# تسهیل الهدایة

## پښتو شرح د هدایه

مع

المرقاة الصافیه بتخریج احادیث الهدایة

الانوار الراجحة فی مسائل الهدایة

حل لغات الهدایة

تالیف

مولانا پروفیسر شاه فیصل

فاضل امداد العلوم

فیصل کتب خانه

محله جنگی پېښور

نوی تصحیح شده او اضافه شده ایډیشن

# تسهیل الهدایه

## په قندهاریٔ او یوسفزیٔ پښتو کې شرح

# هدایه

تالیف :مولانا شا ه فیصل فاضل وفا ق المدارس وامداد العلوم

جلد:۳

### خصوصیات او اضافات

① په هدایه کښې ذکرشوې حدیث باندې لاندې حاشیه کښې د هغې تخریج

② داحنافو په مینځ کښې په مختلف فیها مسئله کښې د راجح قول تعین

③ د قندهاریٔ او یوسفزیٔ پښتو کډون او امتزاج

④ د هدایه د مشکلو لغاتو حل

⑤ دهدایه متن ته اعراب ورکول

⑥ د مضمون په لحاظ سره د هدایه متن تقسیمول

⑦ د هدایه د هرې جملې سره متصل دهغې ترجمه

⑧ د هدایه عبارتونو ته د موضوع په لحاظ سره عنوانات ورکول

⑨ شرحې ته په عربیٔ ژبه کښې مناسب عنوانات ورکول

⑩ د کتاب په اول کښې د فقه په ضروری مباحثو مشتمله جامع مقدمه

ناشر

فیصل کتب خانه محله جنګی پیښور موبائیل: ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵

# د حقوقو په باره کښې

د تسهیل الهدایه ټول حقوق د طباعت د مولانا شاه فیصل په نوم د حکومت پاکستان سره رجسټرډ دی د دې د څه حصې ترجمه یا نقل کول قانونی او شرعی جرم دې او د مجرم خلاف به قانونی کاروائی کولې شی رجسټریشن نمبربالترتیب د اول جلد نه تر اتم جلد پورې دا دې ۲۲۹۱٤ تا ۲۲۹۱۲۱

**دکتاب نوم** :تسهیل الهدایه شرح هدایه پښتو

**تالیف** :مولانا شاه فیصل فاضل وفاق المدارس وامدادالعلوم

**د ملاویدو پتې:**

فیصل کتب خانه محله جنګی پیښور ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵
رشیدیه کتب خانه اکوړه خټک ۰۳۳۳۹۱۵۸۴۷۷
علمیه کتب خانه اکوړه خټک ۰۹۲۳۶۳۰۵۹۴
مکتبه رحمانیه کانسی روډ کوئټه ۰۳۳۳۷۸۰۶۰۴۹
مکتبه عثمانیه کانسی روډ کوئټه ۰۳۰۱۳۷۳۷۰۳۰
مکتبه عرفان کانسی روډ کوئټه ۰۳۳۳۷۸۲۱۳۱۶
مکتبه یوسفیه کانسی روډ کوئټه ۰۳۲۱۰۸۲۸۹۳۰
مکتبه طیبه کانسی روډ کوئټه ۰۳۲۱۸۰۲۲۶۹۵
مکتبه حرمین کانسی روډ کوئټه ۰۳۲۱۸۰۰۱۹۳۱
مکتبه علوم اسلامیه کانسی روډ کوئټه ۰۳۳۳۷۸۰۹۱۹۵
راشد کتب خانه چمن ۰۳۰۰۳۸۹۶۳۵۳
مکتبه حقانیه چمن ۰۳۳۳۷۷۵۲۲۱۹
صداقت کتب خانه قندهار افغانستان ۰۷۸۷۷۴۲۳۶۱
قدرت کتب خانه کابل افغانستان ۰۷۹۹۶۱۹۶۰۳
عبدالمجید کتب خانه جلال اباد ۰۷۰۸۱۹۷۷۴۹
اسلامی کتب خانه خوست افغانستان ۰۷۹۹۳۱۰۲۴۷
مکتبه فاروقیه پیښور ۰۳۰۰۹۰۰۷۵۵۰
مکتبه رشیدیه کوئټه ۰۸۱۲۶۶۲۲۶۳
مکتبه معروفیه کانسی روډ کوئټه ۰۳۳۳۷۹۰۷۳۹۸

**د قندهارۍ او یوسفزۍ پښتو**

**هغه ټکی کوم چه د یو بل څخه مختلف دی مونږ د قوسینو په مینځ کښې قندهاری ټکی ته یوسفزی ټکې لیکلې دې اودغه شان د دې پر عکس البته کوم ټکی چې کثیر الاستعمال دی نو په هغې کښې مو یا صرف په قندهارۍ پښتو بسوالې او اکتفاء کړې ده یا په یوسفزۍ پښتو مثلا مونږ او مونږ، قسم او ډول وغیره دغه شان کوم ټکی چې مکرر راغلی دی نو په اول ځل مو په څو مقاماتو کښې د دواړو ژبو ټکی لیکلی دی او بیا مو صرف په یوه ژبه اکتفاء کړې ده په دې طریقه یو طالب علم په دې کتاب کښې د یوسفزۍ او قندهارۍ دواړو لغاتو پوهه حاصلولې شی کوم چې ده ته په نورو کتابونو کښې هم مدد ورکولې شی**

**د مزید تفصیل دپاره په اول جلد کښې مقدمه ضرور اوګورۍ**



# کتاب النكاح

(دا) کتاب د نکاح (داحکامو په بیان کښې) دې.

**تشریح:-** په دې کې اختلاف دې دنکاح لفظ داصل وضع اعتبار سره عقد لپاره دې یا وطی لپاره، په دې سلسله کې دعلماؤ درې قولونه دی.

① دحضرات شوافع قول اصح او د حضرات مالکیه راجح مذهب دادې چې لفظ دنکاح په عقد کې حقیقت دې او وطی کې هم مجاز ده. ② دحضرات حنفیه مسلك دادې چې لفظ دنکاح د وطی په معنی کې حقیقت دې او په عقد کې مجاز، د حضرات شوافعو نه هم دا یو روایت دې. ③ دریم قول دادې لفظ دنکاح وطی او عقد دواړو لپاره علی السواء استعمالیږی. اودواړو کې بالاشتراك حقیقت دې حنابله کې قاضی ابویعلی هم دا اختیار کړې دې، شوافع نه هم یو روایت هم دا نقل شوې دې او حافظ ابوالقاسم زجاجی هم ددې تائید کړې دې.

نکاح باب د عباداتو څخه دې یا مباحاتو څخه؟ دې نه روسته په دې کې اختلاف دې چې نکاح آیا په باب دعباداتو کې ګڼه دې یا مباحاتو کې؟ حضرات حنفیه او حنابله په نیز داپه عبادات کې شامل دی. او حضرات شوافع دا په مباحات کې شمیری.

دمالکیه نه دواړه قولونه منقول دی. یو دا چې نکاح ((اقوات" کې نه ده، ﴿قوت﴾ هغه شی ته وئیلې شی چې دهغې نه بغیر ژوند تیرول مشکل وی او نکاح داسې شی دې چې ددې نه بغیر ژوند مشکل دی، دوهم قول دادې نکاح دتفکهات دقبیل نه ده او دفواکه شان داوی که استعمال شی نو ډیره ښه، که نه وی نو هیڅ حرج نشته.

تخلی للنوافل افضل دی یا نکاح؟ بیا په دې کې اختلاف دې چې نکاح کول سنت دی یا واجب؟ دجمهور علماء کرام مسلك دادې چې نکاح کول سنت دی، اود داود ظاهری رحمه الله، علامه ابن حزم رحمه الله اوامام احمد بن حنبل رحمه الله یو قول دادې چې نکاح کول واجب دی.

دا اختلاف دعامو حالاتو په اعتبار سره دې، کله چې انسان ته په زنا وغیره کې داخته کیدو ویره نه وی، که ددې ویره وی نو ﴿عند التوقان﴾ بیا دټولو لپاره نکاح کول واجب دی. البته حضرات شوافع په دې صورت کې هم دوجوب قائل نه دی، بلکه هغوی ورته صرف مستحب وائی.

چه کوم حضرات دوجوب نکاح قائل دی لکه څنګه چهد داود ظاهری رحمه الله وغیره مذهب دې هغوی دقران عظیم الشان آیت مبارك ((فَانْكِحُوا مَا طَابَ لَكُمْ مِّنَ النِّسَآءِ)) نه استدلال کوی چې ((فَانْكِحُوا)) دامر صیغه ده، داشان په حدیث کې ﴿تزوجوا الولود الودود فانی مکاثر بکم الامم﴾ کې وارد شوی دی او په دې کې هم ﴿تزوجو﴾ دامر صیغه ده. داشان په بخاری شریف کې یو حدیث رازی، ددې په آخر کې دې چې ﴿فمن رغب عن سنتی فلیس منی﴾، ددې نه هم وجوب ثابتیږی.

لیکن جمهور عالمان فرمائی چې دا دلائل دوجوب لپاره کافی نه دی، آیت کریمه چې ((فَانْكِحُوا)) دامر صیغه دې لیکن امر هر ځاې کې دوجوب لپاره نه رازی، د آیت کریمه سیاق وسباق هم په دې باندې دلالت کوی چې نکاح واجب نه ده، داشان ﴿تزوجوا الولود الودود﴾، کې دامر صیغه خو ده لیکن مخکې چې په ﴿مکاثر بکم الامم﴾ سره کوم علت بیان فرمائیلې دې، دې نه متبادر هم دا کیږی چې وجوب لره بیانول مقصود نه دې.

او ﴿من رغب عن سنتی فلیس منی﴾ دهغه سړی لپاره بیان فرمائیلې شوی دی چې د حضرت نبی کریم دسنتو مبارك نه

اعراض اوكړي ، بياهم كه يوسړي دسنت نه اعراض نه كوي اوهغه نكاح صرف په دې وجه نه كوي چې د؛ ته دنكاح كاوه اړتيا او حاجت نشته نو دا وعيدد هغه لپاره نه دې.

دشام مشهور عالم شيخ عبدالفتاح ابوغده په يوكتاب د «العلماء العزاب الذين آثروالعلم على الـزواج» نوم سره تحرير فرمائيلى دى ، په دې كي هغوى دهغه عالمانو مختصر حالات جمع كړى دى چې هغوى دعلمى مصروفياتو په وجه د ازواج اړتيا محسوس نه كړو . اوپه دې كي هغوى تقريبا د شپږديرشو (٣٦) عالمانو ذكر فرمائيلې دې چې په هغوى كي ابن تيميه رحمه الله او علامه نووى رحمه الله پشان اساطين علم نومونه ګډ دى . ظاهره ده چې ددې اهلِ علم متعلق خودا نشى وئيلې كيداې چې هغوى يو واجب عمل پرېښودو.

پخپله دامام بخارى رحمه الله دصنيع اوطرزنه معلوميږي چې هغه هغوى مطلقًا دنكاح دوجوب قائل نه دې خكه د(((فَانْكِحُوا))) والاآيت هغوى په «باب الترغيب فى النكاح» لاندې ذكركړې دې. دې خبرې طرفته داشارې كاوه لپاره دا په وجوب باندې دال نه دې ، صرف دترغيب لپاره دې.

## د نكاح د منعقد كيدو الفاظ

| قَالَ النِّكَاحُ يَنْعَقِدُ بِالْإِيجَابِ وَالْقَبُولِ نكاح تړلې كيږي په ايجاب او قبول بِلَفْظَيْنِ يُعَبَّرُ بِهِمَا عَنِ الْمَاضِي يعنى په داسې دووه لفظونو په كومو چې تعبير او كړې شى د ماضى نه ، |
|---|

حل اللغة: ① ايجاب: واجبول ② الاخبار: خبر وركول ③ الانشاء: نوې پيدا كول]

تشريح:- ايجاب هغه لفظ ته وائى .كوم چې د احد المتعاقدين نه اولاً صادر شى .خكه چې دا مخاطب باندې اثبات يا نفى كي خواب واجبوى .اوكوم لفظ چې د احد المتعاقدين نه ثانياً صادرشى .هغه ته قبول وائى . ماتن بلفظين اوفرمائيل.اودې اړخ ته ئې اشاره اوفرمائيله.چه صرف د ليكلو په ايجاب اوقبول سره نكاح نه منعقد كيږي .هم دا قول د ائمه ثلاثه رحمهم الله دې.خكه چې ليكلى شوى ايجاب اوقبول ته نقوش وائى . لفظ ورته نه وائى .

| لِأَنَّ الصِّيغَةَ وَإِنْ كَانَتْ لِلْإِخْبَارِ وَضْعًا خكه چې صيغه (ماضى ) اګر چې مقررشوې دَ اخبار دَ پاره ده فَقَدْ جُعِلَتْ لِلْإِنْشَاءِ شَرْعًا دَفْعًا لِلْحَاجَةِ خوبيا دَ انشاء دَ پاره اوګرځولې شوه شرعًا دَ اړتيا لرې كاوه دَ پاره . |
|---|

تشريح:- په دې عبارت سره د دليل په صورت كي د اشكال خواب وركوى حاصل د اشكال دا دې.چه نكاح د انشاء د قبيلې خنې ده.او انشاء وائى [اثبات مالم يكن ثابتا] ته.يعنى كوم شى چې ثابت نه وو.هغه ثابتول.او،حدوث امر فى الحال، ته.يعنى په زمانه موجوده كي يو امر د عدم نه وجود ته راوستل.نود نكاح انعقاد به داسې لفظ ته محتاج وى .چه صراحة په دې معنى باندې دلالت اوكړي .او په لغت كي داسې لفظ نشته.چه صراحتاً په ،حدوث امر فى الحال، باندې دلالت اوكړي .خكه چې ماضى خو په تيره شوې باندې دلالت كوى .او مضارع چې ځنګه په حال باندې دلالت كوى .دغه ډول په استقبال باندې هم دلالت كوى .نود مضارع دلالت به په حال باندې صريحى نه وى .نو اوس به ايجاب اوقبول د ماضى په صيغې سره ځنګه تعبير كولې شى .

خواب وركړې شو.چه د ماضى صيغه اګرچه د اخبار لپاره وضع كړې شوې ده.خود نكاح د مصلحت اړتيا پوره كاوه لپاره د انشاء په معنى كي نقل كړې شو.لكه جمله دعائيه [سقى الله ثراه]او افعال مدح لكه نعم،او ذم لكه بئس،كي چې ماضى د انشاء په معنى كي نقل كړې شو. والله اعلم

## د نكاح انعقاد

| وَيَنْعَقِدُ بِلَفْظَيْنِ يُعَبَّرُ بِأَحَدِهِمَا عَنِ الْمَاضِي وَبِالْآخَرِ عَنِ الْمُسْتَقْبَلِ اوتړلې كيږي په داسې دووْ لفظونو،چه په |
|---|



| دوى كي دَ يونه تعبير اوكړې شى په ماضى ،او دَ بل نه په مستقبل، مِثْلَ أَنْ يَقُولَ زَوِّجْنِي فَيَقُولَ زَوَّجْتُكَ مثلاً څوك او فرمائى زوجنى بل او فرمائى زوجتك |
|---|

تشريح:- په متن كي د مستقبل نه مراد د امر صيغه ده.حاصل داشو.چه نكاح د ماضى په صيغه اود امر په صيغه سره هم منعقد كيږي .مثلا سړى اووئيل، زما نكاح اوكړه،ښځه په خواب كي اووائى ،مانكاح اوكړله،يا ددې په عكس،نو نكاح به منعقد شى .

| لِأَنَّ هٰذَا تَوْكِيلٌ بِالنِّكَاحِ وَالْوَاحِدُ يَتَوَلَّى طَرَفَيِ النِّكَاحِ خكه چې دا د نكاح لپاره واكدار جوړول دې او يو سړې دَ دواړوطرفونه دَ نكاح واكدار جوړيدې شى عَلَى مَا نُبَيِّنُهُ إِنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالَى لكه چې موږ به بيان كړو انشاء الله تعالى |
|---|

تشريح:- خكه چې ړومبې قول ايجاب نه دې .بلكه د نكاح وكيل جوړول دى .او دوهم قول،زوجتك، ايجاب او قبول دواړه دى .او په نكاح كي ،احد المتعاقدين،ايجاب او قبول دواړه كولې شى .د خپل اړخه د اصل كيدلو،اود بل دارخه د وكيل كيدلو په وجه،د نكاح په باب كي يوسړې د ايجاب اوقبول دواړو متولى جوړيدلې شى . اګرچه د بيع په باب كي صحيح نه دى .وجه د توپير داده.چه په بيع كي حقوق واپس كيږي وكيل اړخ ته،او په نكاح كي واپس كيږي موكل اړخ ته.نو په بيع كي د ،احد المتعاقدين،د طرفينو متولى جوړيدلو په صورت كي د يوكس مطالِب او مطالَب،مملوك اومتملك كيدل لازميږي .اودا غير معقول اومحال ده.اوچونكه په نكاح كي حقوق موكل اړخ ته واپس كيږي .په دې وجه دا خرابى نه لازميږي .

## د نكاح د الفاظو بيان

| وَيَنْعَقِدُ بِلَفْظِ النِّكَاحِ وَالتَّزْوِيجِ وَالْهِبَةِ وَالتَّمْلِيكِ وَالصَّدَقَةِ او تړلې كيږي په لفظ دَ نكاح،او تز ويج،او هبه او تمليك او صدقې، |
|---|

حل اللغة: ① التزويج: وادهٔ كول ② التمليك: مالك جوړول ③ الضم: يوځائې كول ]

تشريح:- مصنف رحمه الله په دې عبارت كي د نكاح الفاظ بيان كړى دى .د احنافو رحمهم الله په نيز په متن كي ذكرشوى ټولو الفاظوسره نكاح منعقد كيږي .صاحب د شرح وقايه رحمه الله قاعده بيان كړې ده.چه هرهغه لفظ چې د [تمسك عين فى الحال] لپاره وضع شوې دې.په هغې سره نكاح منعق٢د كيږي .

| وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللّٰهُ لَا يَنْعَقِدُ إِلَّا بِلَفْظِ النِّكَاحِ وَالتَّزْوِيجِ امام شافعى رحمه الله فرمائى چې نهٔ تړلې كيږي مګر په لفظ دَ نكاح او دَ تزويج |
|---|

تشريح:- امام شافعى رحمه الله فرمائى .چه صرف په دوې [دوه] لفظونو(نكاح او تزويج) سره نكاح منعقد كيږي .

| لِأَنَّ التَّمْلِيكَ لَيْسَ حَقِيقَةً فِيهِ وَلَا مَجَازًا عَنْهُ لِأَنَّ التَّزْوِيجَ لِلتَّلْفِيقِ وَالنِّكَاحَ لِلضَّمِّ خكه چې تمليك په نكاح كي نهٔ حقيقت دې او نه مجاز دې خكه چې تزويج دَ پاره دَ تلفيق (انختلو)او نكاح دَ پاره دَ ضم (يوځائې دپاره)دې وَلَا ضَمَّ وَلَا ازْدِوَاجَ بَيْنَ الْمَالِكِ وَالْمَمْلُوكَةِ أَصْلًا اود مالك او مملوك په مينځ كي نه ضم وى او نه ازدواج. |
|---|

تشريح:- د امام شافعى رحمه الله د دليل حاصل دادې.چه لفظ په كومه معنى كي مستعمل وى .يابه حقيقت وى ،او يا به مجاز وى .او لفظ د تمليك ، هبه، او صدقه د نكاح په معنى كي نه حقيقت دى او نه مجاز دى .حقيقت خو په دې وجه نه دې.چه د نكاح حقيقى معنى ، ضم، كول دى .اود ،تزويج،حقيقى معنى ،تلفيق، ده.په تمليك اوددې پشان(د نورو لفظونو په) معنى كي دا معنى موجود نه ده.او مجاز په دې وجه نه دې.چه د مالك او مملوك په مينځ كي تباين وى . او،احد المتبائنين، د آخر لپاره مجاز نشى جوړيدلې.د علاقهٔ د نه كيدلو په وجه.

| وَلَنَا أَنَّ التَّمْلِيكَ سَبَبٌ لِمِلْكِ الْمُتْعَةِ فِي مَحَلِّهَا بِوَاسِطَةِ مِلْكِ الرَّقَبَةِ زموږ دليل دا دې چې تمليك دَ ملكِ متعه سبب دې |
|---|

محل متعه كي په ذريعه دَ ملك رقبه. وَهُوَالثَّابِتُ بِالنِّكَاحِ وَالسَّبَبِيَّةُ طَرِيقُ الْمَجَازِ او دا ثابت دي دَ نكاح نه او سببيت دَ مجاز يوه طريقه ده.

**تشريح:**-د احنافو رحمهم الله د دليل حاصل دادي.چه تمليك وغيره لفظونه د نكاح په معنى كي مجازاً مستعمل دى .د سببيت د علاقة په وجه،ځكه چي تمليك د ملك رقبه په واسطي سره د ملكِ متعه سبب دي.د متعه په محل كي ،مثلاً كه څوك سرې د يوې وينځي د رقبه مالك شى .نود رقبه يعنى د ذات په ضمن كي ددې د متعه هم مالك جوړيږى .او ملكِ متعه حاصليږى .په لفظ د نكاح سره.نو ګويا لفظ د تمليك سبب شو.او لفظ د نكاح مسبب،او اصول دادى .چه سبب وئيل،او مسبب مراد اخستل مجازاً درست دى .اګرچه ددې په عكس درست نه دى .نو تمليك وغيره الفاظوسره نكاح مراد اخستلې شى .

## په لفظ د بيع سره د نكاح انعقاد

وَيَنْعَقِدُ بِلَفْظِ الْبَيْعِ هُوَالصَّحِيحُ لِوُجُودِ طَرِيقِ الْمَجَازِ او ترلې كيږى په لفظ دَ بيع،دا صحيح ده دَ مجاز دَ طريقې د وجود په وجه

**حل اللغة:** ① **الاباحة** مباح كول ② **الاحلال:** حلال كول،جائز كول ③ **الاعارة:** په خواس سره يو شى وركول]

**تشريح:**- د اصح قول په بناء باندې د بيع په لفظ سره نكاح منعقد كيږى .ابوبكر اعمش رحمه الله فرمائى .چه په دې سره نه منعقد كيږى .وجه داده.چه لفظ د بيع مخصوص ده، د.تمليك مال بالمال، دپاره.او مملوك بالنكاح مال نه دې.ځكه به د نكاح انعقاد نه وى .

د قول صحيح وجه داده.چه دلته كي هم طريق مجاز موجود ده.په دې طريقه چې بيع د داسې ملك موجب دې.چه د ملكِ متعه سبب دې.ځكه چې هركله يوكس وينځه خرڅه كړه.نو مشترى د رقبه په ضمن كي ددې وينځې د متعه هم مالك شو.اوددې وينځې سره د خدمت نه علاوه وطى هم حلاله ده.په دې شرط چې څه بله وجه د حرمت نه وى .

وَلَا يَنْعَقِدُ بِلَفْظِ الْإِجَارَةِ فِي الصَّحِيحِ لِأَنَّهُ لَيْسَ بِسَبَبٍ لِمِلْكِ الْمُتْعَةِ او نه ترلې كيږى په لفظ دَ اجارې، په صحيح قول كي ځكه چې دا دَ ملك متعه سبب نه دې وَلَا بِلَفْظِ الْإِبَاحَةِ وَالْإِحْلَالِ وَالْإِعَارَةِ لِمَا قُلْنَا او نه ترلې كيږى په لفظ دَ اباحت او احلال او اعاره،لكه چې موږ وئيلى دى ،

**تشريح:**- د اجاره په لفظ سره د صحيح قول په بناء باندې نكاح نه منعقد كيږى .امام كرخى رحمه الله فرمائى .چه منعقد كيږى .ددې وجه دوى دا بيان كړې ده.چه د تمليك اجاره منفعت دې.او ملكِ متعه هم منفعت دې.خو موږ خواب وركوو.چه ملكِ متعه د اجاره خنې نه ده.نوكه وينځه د خدمت لپاره واخستلې شى .نودې وينځې سره به د مستاجر لپاره وطى هم حلاله وى .د قول صحيح دليل دادې.چه اجاره د ملكِ متعه سبب نه دې.نود سببيت علاقه د نه كيدلو په وجه طريق مجاز موجود نشو.

په لفظ د اباحت، اعلال، اعاره سره هم نكاح نه منعقد كيږى .هم دا وجه ده.چه دا الفاظ هم د ملكِ متعه سبب نه دى .

وَلَا بِلَفْظِ الْوَصِيَّةِ لِأَنَّهَا تُوجِبُ الْمِلْكَ مُضَافًا إِلَى مَا بَعْدَ الْمَوْتِ او نه په لفظ دَ وصيت، ځكه چې دا داسې ملك واجبوى د كوم نسبت چې كيږى .دمرګ نه روسته ( زمانه) ارخ ته .

**تشريح:**- په لفظ د وصيت سره هم نكاح نه معقد كيږى .ځكه چې وصيت اګرچه موجب د ملك دې.خود داسې ملك موجب دې.چه ،مابعد الموت، به حاصليږى .اود انعقاد نكاح لپاره داسې ملك ضرورى دې.چه فى الحال موجود وى .

## د نكاح شرائط.اود ګواهانوصفات



قَالَ وَلَا يَنْعَقِدُ نِكَاحُ الْمُسْلِمِينَ إِلَّا بِحُضُورِ شَاهِدَيْنِ حُرَّيْنِ عَاقِلَيْنِ بَالِغَيْنِ مُسْلِمَيْنِ رَجُلَيْنِ أَوْ رَجُلٍ وَامْرَأَتَيْنِ عُدُولًا كَانُوا أَوْ غَيْرَ عُدُولٍ أَوْ مَحْدُودِينَ فِي الْقَذْفِ اويا دَ يو سړى او دوو ښځو ،كه عادلان وى او كه غير عادلان او يا په تهمت لګولو كي پرې حد جارى شوې وى . قَالَ رضى الله عنه اعْلَمْ أَنَّ الشَّهَادَةَ شَرْطٌ فِي بَابِ النِّكَاحِ علامه مرغينانى فرمائى پوهه شه ،چه شهادت شرط دې په باب دَ نكاح كي لقوله عليه الصلاة والسلام { لَا نِكَاحَ إِلَّا بِشُهُودٍ } (١) ځكه چې دَ نبى كريم ﷺ ارشاد دې چې نكاح نشته مګر په ګواهانو، وَهُوَحُجَّةٌ عَلَى مَالِكٍ فِي اشْتِرَاطِ الْإِعْلَانِ دُونَ الشَّهَادَةِ او دا حجت دې په امام مالك رحمه الله په شرط كاوه دَ اعلان كي نه د شهادت كي ، وَلَابُدَّ مِنِ اعْتِبَارِ الْحُرِّيَّةِ فِيهَا لِأَنَّ الْعَبْدَ لَا شَهَادَةَ لَهُ لِعَدَمِ الْوِلَايَةِ او ضرورى دې اعتبار دَ حريت په شهادت كي ځكه چې دَ غلام دَ پاره شهادت نشته ځكه چې دده ولايت نشته، وَلَابُدَّ مِنِ اعْتِبَارِ الْعَقْلِ وَالْبُلُوغِ لِأَنَّهُ لَا وِلَايَةَ بِدُونِهِمَا اوضرورى دې اعتباردَ عقل او دَ بالغ كيدوځكه چې دَدې دواړو نه بغير دَ ولايت نشته وَلَابُدَّ مِنِ اعْتِبَارِ الْإِسْلَامِ فِي أَنْكِحَةِ الْمُسْلِمِينَ لِأَنَّهُ لَا شَهَادَةَ لِلْكَافِرِ عَلَى الْمُسْلِمِ او ضرورى دې اعتبار دَ اسلام دَ مسلمانانو په نكاحونو كي ،ځكه چې په مسلمان دَ كافر شهادت نشته، وَلَا يُشْتَرَطُ وَصْفُ الذُّكُورَةِ حَتَّى يَنْعَقِدَ بِحُضُورِ رَجُلٍ وَامْرَأَتَيْنِ او نه دې شرط صفت د نارينه والى ، تر دې چې ترلې كيږى نكاح په حضور دَ يو سړى او دُوو ښځو

**حل اللغة:** ① **المحدود في القذف:** محدود في القذف هغه چاته وائى چې په چا باندې د زنا الزام اولګوى او بيا په څلورو ګواهانوسره هغه ثابته نكړې شى او دهغې په سزا كي ورته اتيا كوړې وركړې شى .② **الجريمة** جرم ③ **ثمرة:** ميوه، فائده ④ **العميان:** جمع د اعمى ده معنى ئې ده ړوند]

**تشريح:**- ددې خائې نه مصنف رحمه الله د نكاح شرط بيانوى .فرمائى .چه په نكاح كي شهادت شرط دې.امام مالك رحمه الله فرمائى .چه اعلان شرط دې شهادت شرط نه دې.امام مالك رحمه الله په استدلال كي حديث[أعلنوا النكاح ولو بالدف] ذكر كړې دې.يعنى د نكاح اعلان كوئ.اګرچه په دف سره وى .احنافو رحمهم الله په استدلال كي حديث[لانكاح إلا بشهود] پيش كړې دې.يعنى بغير د ګواهانو نه منعقد كيږى .د امام مالك رحمه الله د پيش كړې شوى حديث ځواب دادې.چه دا حديث د اعلان په وجوب دلات كوى .خود اعلان په شرط كيدلو باندې نه كوى .

ددې نه روسته صاحب د كتاب رحمه الله د ګواهانو يوڅو صفات بيان كړى دى .اول دا چه د دواړو آزاد كيدل ضرورى دى .ځكه چې د شهادت اهل به هغه كس وى .چاته چې د ولايت حق حاصل وى .اوچونكه غلام ته په خپل ذات باندې د ولايت حق حاصل نه وى .نو په غير باندې به هم د ولايت حق حاصل نه وى .ولايت وائى .[تنفيذ القول على الغير] ته. دوهم دا چې دواړه ګواهان عاقل بالغ وى .ځكه چې ددې دواړو ځيزونو نه بغير د ولايت حق نه حاصليږى .نود شهادت اهل به هم نه وى .دريم داچه د مسلمانانو په نكاح كي دګواهانو مسلمان كيدل ضرورى دى .دليل دادې.چه د هيڅ مسلمان خلاف د كافرشهادت معتبر نه دې.د قرآن آيت «وَلَنْ يَجْعَلَ اللّٰهُ لِلْكٰفِرِينَ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ سَبِيلًا» (النساء:١٤١) په وجه د احنافو رحمهم الله په نيز د ګواهانو سړى كيدل ضرورى نه دى .بلكه يو سړې او دوې [دوه] ښځې هم ګواهان جوړيدلى شى .

وَفِيهِ خِلَافُ الشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللّٰهُ تَعَالَى وَسَتَعْرِفُ فِي الشَّهَادَاتِ إِنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالَى او په دې كي دَ امام شافعي رحمه الله اختلاف دې كوم چې به عنقريب په كتاب الشهادات كي معلوم شى انشاء الله تعالى . وَلَا تُشْتَرَطُ الْعَدَالَةُ حَتَّى يَنْعَقِدَ بِحَضْرَةِ الْفَاسِقَيْنِ عِنْدَنَا اود عدالت شرط هم نه دې لګولې شوې .نو زموږ په نيز به د دوې [دوه] فاسقانو په

١) غربه الزيلعى رحمه الله بهذا اللفظ ثم نقل عدة أحاديث فمنها حديث عائشة رضي الله عنها قالت قال رسول الله ﷺ لا نكاح إلا بولى وشاهدى عدل،وماكان من نكاح على غير ذلک فهو باطل فإن تشاجروا فالسلطان ولى من لا ولى له) أخرجه ابن حبان فى صحيحه فى النوع الثامن والتسعين من القسم الأول) نصب الرأية(٣/٢١٣)_

موجودګۍ کي نکاح منعقد کیږي .خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ ؒ لَهُ أَنَّ الشَّهَادَةَ مِنْ بَابِ الْكَرَامَةِ وَالْفَاسِقُ مِنْ أَهْلِ الْإِهَانَةِ په خلاف د امام شافعي ؒ ددوی دلیل دادي چه شهادت د باب کرامت څخه دي.او فاسق د اهل اهانت والا خلګو څخه دي.

**تشریح:-** البته د امام شافعي ؒ اختلاف دي.دي فرمائي .چه په نکاح کي د سړو سره د ښځو ګواهي نشي قبلیدلي.تفصیل به په کتاب الشهادات کي بیان کړو. د عدالت په شرط لګولو کي اختلاف دي.د احنافو ؒ مذهب دادي.چه د شاهدینو عدالت شرط نه دي.امام شافعي ؒ عدالت د ګواهانو لپاره شرط ګرځوي .د امام شافعي ؒ دلیل دادي.چه شهادت د باب کرامت څخه دي. د نبي کریم ﷺ د قول[أکرموا الشهود] په وجه،یعني د ګواهانو اکرام کوئ.ددي حدیث نه معلومه شوه.چه ګواهان اکرام قابل دی .او فاسقان د اهانت لائق دی .نو فاسق ګواه نه جوړولو سره ددوی اهانت کول پکار دی .نو په ګواه جوړولو سره به ددوی اکرام نشي کولي.

وَلَنَا أَنَّهُ مِنْ أَهْلِ الْوِلَايَةِ فَيَكُونُ مِنْ أَهْلِ الشَّهَادَةِ او زموږ دلیل دادي.چه فاسق د اهل ولایت څخه دي.نود اهل شهادت څخه به هم وي . وَهٰذَا لِأَنَّهُ لَمَّا لَمْ يُحْرَمِ الْوِلَايَةَ عَلَى نَفْسِهِ لِإِسْلَامِهِ لَا يُحْرَمُ عَلَى غَيْرِهِ اودا خبره په دي وجه ده.چه هرکله فاسق پخپل ذات باندي د ولی کیدلو نه محرومه نکړي شو.د مسلمان کیدلو په وجه.نو په غیر به د ولی کیدلو نه هم نه محروم کیږي . لِأَنَّهُ مِنْ جِنْسِهِ وَلِأَنَّهُ صَلُحَ مُقَلَّدًا فَيَصْلُحُ مُقَلِّدًا څکه چي دا غیر هم دده هم جنس دي.او څکه چي فاسق صلاحیت لري .چه بل ته غاړکۍ واچوی .نو خان ته هم غاړکۍ اچونکي جوړیدي شی . وَكَذَا شَاهِدًا وَالْمَحْدُودُ فِي الْقَذْفِ مِنْ أَهْلِ الْوِلَايَةِ فَيَكُونُ مِنْ أَهْلِ الشَّهَادَةِ تَحَمُّلًا اوهم دغه ډول شاهد هم کیداي شی .او محدود فی القذف د اهل ولایت څخه دي.نود اهل شهادت څخه به هم وی .د تحمل په طور. وَإِنَّمَا الْفَائِتُ ثَمَرَةُ الْأَدَاءِ بِالنَّهْيِ لِجَرِيمَتِهِ فَلَا يُبَالِي بِفَوَاتِهِ او فوت کیدل ثمره د اداء ده.د مخالفت په وجه.چه دا دده دمجرم کیدلو په وجه دی .اود ادا فوت کیدلو لحاظ نه دي کړي شوي كَمَا فِي شَهَادَةِ الْعُمْيَانِ وَابْنَيِ الْعَاقِدَيْنِ لکه څنګه چي د ړندو په ګواهۍ کي اود عاقدینو د خامنو په ګواهۍ کي.

**تشریح:-** د احنافو ؒ دلیل دادي.چه فاسق د اهل ولایت څخه دي.نود اهل شهادت څخه به هم وی .او فاسق په اهل ولایت کي کیدل څکه دی .چه شریعت دي د مسلمان کیدلو په وجه په خپل ځان باندي د ولایت نه نه دي محروم کړي.نو په غیر باندي به هم د ولایت نه نشي محروم کیدلي.څکه چي دا غیر هم د مسلمان کیدلو په وجه دده هم جنس دي.

ۛد دوهم دلیل حاصل دادي.چه فاسق حاکم جوړیدلي شی .اود حاکم لپاره جائز دی .چه دي څوك قاضی جوړ کړي .او فاسق حاکم چي هرکله بل څوك قاضی جوړولي شی .نو په خپله هم قاضی جوړیدلي شی .او هرکله چي قاضی جوړیدلي شی .نو شاهد هم جوړیدلي شی .څکه چي شهادت او قضاء دواړه د یو باب څخه دی .څکه چي په دواړو کي د [تنفیذ الحکم علی الغیر] معنی موجود ده.

ۛکوم کس ته چي حدقذف لګولي شوي وی .هغه هم چونکه د اهل ولایت څخه دي.نود اهل شهادت والو څخه به هم وی .څودا کس د تحمل شهادت(یعني د شهادت اوچتولو) اهل دي.د شهادت ادا کاوه اهل نه دي. یعني د،محدود فی القذف، په موجودګۍ کي نکاح منعقد کیږي .څکه چي په نکاح کي تحمل شهادت کافی دي.خو که کله د قضاء په مجلس کي د ګواهی ورکولو اړتیا راپیښ شی .نو دده ګواهی به نه قبلیږي .د آیت (وَلَا تَقْبَلُوا لَهُمْ شَهَادَةً أَبَدًا) په وجه، یعني ددوی ګواهی کله هم مه قبلوئ.

ۛدا بالکل داسي ده.لکه چي د دوي [دوه] ړندو یا د عاقدینو د دوي [دوه] خامنو په موجودګۍ کي نکاح منعقد کیږي .څکه چي دوی د تحمل شهادت اهل دی .خود ړندو ګواهی ،اود عاقدینو د خامنو ګواهی دپلار په حق کي نه قبلیږي .خوکه خلاف ګواهی ورکړي .نو د څوی ګواهی به هم د پلار په خلاف قبلیږي .



## د ذمیانو ګواهي

قَالَ وَإِنْ تَزَوَّجَ مُسْلِمٌ ذِمِّيَّةً بِشَهَادَةِ ذِمِّيَّيْنِ جَازَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رحمهما الله (١) که چا مسلمان د یوي ذمیه ښځي،نکاح او کړه په شهادت د دوو ذمیانو نو جائز ده په نزد د امام ابوحنیفه او ابویوسف رحمهما الله ، وَقَالَ مُحَمَّدٌ وَزُفَرُ رحمهما الله لَا يَجُوزُ لِأَنَّ السَّمَاعَ فِي النِّكَاحِ شَهَادَةٌ اوامام محمد ؒ او زفر ؒ فرمائي چي جائز نه ده.څکه چي آوریدل په نکاح کي شهادت دي وَلَا شَهَادَةَ لِلْكَافِرِ عَلَى الْمُسْلِمِ فَكَأَنَّهُمَا لَمْ يَسْمَعَا كَلَامَ الْمُسْلِمِ او د کافر شهادت د مسلمان خلاف معتبر نه دي،نو ګویا دوی د مسلمان کلام آوریدلي نه دي

**حل اللغة:** ① ذی خطر: قابل عزت ② سماع: اوریدل]

**تشریح:-** په تیره شوي مسئله کي د شاهدینو لپاره مسلمان کیدل شرط اوخودلی شو.دا مسئله هم په هغي متفرع ده.ذمی هغه کافر خلګ دی .چه دوی په اسلامی ملك کي په فرمانبرداري اوذمه داري سره اوسیږي .که هندو وی .او که یهودی یا نصرانی وی .خو په متن کي د ذمی نه مراد اهل کتاب دی .که یهودی وی اوکه نصرانی وی .څکه چي د مسلمان نکاح صرف کتابیه سره جائز ده. غیرکتابیه سره جائز نه ده.

ۛد متن په مسئله کي اختلاف دي.شیخین رحمهما الله د جواز قائل دی .امام محمد او زفر رحمهما الله د جواز قائل نه دی .د امام محمد اود زفر رحمهما الله دلیل دادي.چه په نکاح کي د ایجاب اوقبول اوریدلو نوم شهادت دي.اود کافر شهادت د مسلمان په خلاف معتبر نه دي.نو ګویا ذمیانو د مسلمان کلام اوریدلي هم نه دي.حاصل داچه دي دواړه حضراتو سماع قیاس کړه په عدم سماع باندي.او هرکله چي ایجاب اوقبول ني اوریدلي نه دي.نو شهادت هم موجود نشو.نو نکاح به هم منعقد نه وي .

وَلَهُمَا أَنَّ الشَّهَادَةَ شُرِطَتْ فِي النِّكَاحِ اعْتِبَارًا لِإِثْبَاتِ الْمِلْكِ د شیخینو دلیل دا دي چي شهادت شرط شوي دي په نکاح کي د ملك بضعه ثابتولو په اعتبار باندي لِوُرُودِهِ عَلَى مَحَلٍّ ذِي خَطَرٍ لَا عَلَى اعْتِبَارِ وُجُوبِ الْمَهْرِ په ذی عظمت محل د ورود د ملك په وجه،نه چي د وجوب د مهر په اعتبار، إِذْ لَا شَهَادَةَ تُشْتَرَطُ فِي لُزُومِ الْمَالِ وَهُمَا شَاهِدَانِ عَلَيْهَا څکه چي په لزوم د مال کي شهادت شرط نه دي او دغه دواړه ذمیان د ذمیه خلاف ګواهان دي بِخِلَافِ مَا إِذَا لَمْ يَسْمَعَا كَلَامَ الزَّوْجِ لِأَنَّ الْعَقْدَ يَنْعَقِدُ بِكَلَامَيْهِمَا په خلاف د هغي صورت نه کله چي دواړو ګواهانو د زوج خبره آو ریدلي نه وي ،څکه چي عقد د دواړو په کلام،تړلي کیږي ، وَالشَّهَادَةُ شُرِطَتْ عَلَى الْعَقْدِ او شهادت په عقد مشروط دي.

**تشریح:-** د شیخینو رحمهما الله د دلیل حاصل دادي.چه په نکاح کي دوي [دوه] شیان (څیزونه ) دی .یوخو داچه ملك بضع د خاوند لپاره ثابتیږي . دوهم داچه د ښځي لپاره په خاوند باندي مال مهر واجبیږي .داخبره منلي شوي ده.چه شهادت د داسي شی د پاره وی .چه هغه د احترام قابل وی .او بضع د احترام قابل ده.د مال په لزوم کي هیڅ احترام او عظمت نشته.تردي که د نکاح په وخت کي د مال ذکر اونکړي شی .بیا هم نکاح منعقد کیږي .ددي تمهید نه دا خبره ثابته شوه.چه په نکاح کي ګواهی ،ملكِ بضع علی الزوجه، د خاوند لپاره ثابتولو لپاره ده.په خاوند باندي د مال واجبولو لپاره نه ده.نو معلومه شوه.چه داګواهی د مسلمان خاوند په حق کي اود ذمیه ښځي په خلاف ده.څکه چي د کافر ګواهی د مسلمان په حق کي قبلولي شی اګرچه په خلاف نه قبلیږي .نود دوي [دوه] ذمیانو په ګواهۍ سره دا نکاح منعقد کیږي .د امام محمد اود

---

(١) القول الراجح هو قول الشخين رحمهما الله كذا فى الخانية (١٥٦/١) وفتح القدير (١١٤/٣) وردالمحتار (٢٩٧/٢) والهندية (٢٦٧/١) نقلاً عن القول الراجح (٢٤٣/١)-

امام زفر ﷫ د دلیل خواب دادې.چه سماع په عدم سماع باندې قیاس کول، قیاس مع الفارق دی .چه ددې هیڅ اعتبار نشته.والله اعلم بالصواب.

### د ایجاب اوقبول په وخت د ګواهانو موجودګي

قَالَ وَمَنْ أَمَرَ رَجُلًا بِأَنْ يُزَوِّجَ ابْنَتَهُ الصَّغِيرَةَ فَزَوَّجَهَا يو سړي چا بل سړي ته حکم او کړو چې دَ ده دَ نا بالغې لور نکاح او کړه نو هغه يې نکاح او کړو وَالْأَبُ حَاضِرٌ بِشَهَادَةِ رَجُلٍ وَاحِدٍ سِوَاهُمَا جَازَ النِّكَاحُ په داسې حال کې چې پلارئ حاضردې صرف دَ یو سړي په ګواهی ،دَ واکدار او پلار نه علاوه نو نکاح جائز دې لِأَنَّ الْأَبَ يُجْعَلُ مُبَاشِرًا لِلْعَقْدِ لِاتِّحَادِ الْمَجْلِسِ ځکه چې پلار به عاقد دَ نکاح مقرر شی دَ اتحاد دَ مجلس په وجه وَيَكُونُ الْوَكِيلُ سَفِيرًا وَمُعَبِّرًا فَيَبْقَى الْمُزَوِّجُ شَاهِدًا نو واکدار به محض سفیر او معبروی نو مزوج به شاهد وی ،

**حل اللغة:** ① مباشر ګډون کونکې ② محضر حضور]

**تشریح:-** دا مسئله په دې باندې متفرع ده.چه د نکاح د جواز لپاره دوې [دوه] ګواهان کیدل ضروری دی .که ددې نه کم وی .نو نکاح به نه منعقد کیږی .که یوکس د خپلې صغیرې لور د نکاح لپاره څوك سړې وکیل جوړ کړو.اوس دې وکیل د یوګواه په موجودګئ کې ددې صغیرې نکاح اوکړه.اوس به کتلې شی .چه د انجلی پلار د نکاح په دې مجلس کې موجود دې.او که موجود نه دې.که موجود وی .نو پلار به عاقد دنکاح منلې شی .او وکیل به دوهم ګواه منلې شی .ځکه چې په نکاح کې حقوق د نکاح مؤکل اړخ ته واپس کیږی .وکیل خوصرف سفیرمحض او الفاظ نقل کونکې وی .نو اوس د عاقد یعنی د پلار نه علاوه دوې [دوه] ګواهان موجود شو.نو نکاح صحیح شوه.

وَإِنْ كَانَ الْأَبُ غَائِبًا لَمْ يَجُزْ او که پلار غائب وه نو نکاح به جائز نۀ وی ځکه چې مجلس مختلف دې،نو پلار لره عاقد دَ نکاح مقرر کول ممکن نه دی ، لِأَنَّ الْمَجْلِسَ مُخْتَلِفٌ فَلَا يُمْكِنُ أَنْ يُجْعَلَ الْأَبُ مُبَاشِرًا وَعَلَى هَذَا إِذَا زَوَّجَ الْأَبُ ابْنَتَهُ الْبَالِغَةَ بِمَحْضَرِ شَاهِدٍ وَاحِدٍ إِنْ كَانَتْ حَاضِرَةً جَازَ او په دې اصل باندې ده کله چې پلار دَ خپلې بالغې لور نکاح اوکړو صرف دَ یو ګواه په موجود ګی کې نو که بالغه لور موجوده وَه نو جائز دې وَإِنْ كَانَتْ لَا يَجُوزُ او که غائبه وَه نو جائز به نۀ وی .

**تشریح:-** اوکه پلار د نکاح په مجلس کې موجود نه وی .نود مجلس د اختلاف په وجه پلار عاقد د نکاح ګرځول ممکن پاتې نشو.نو وکیل به عاقد وی .په دې صورت کې صرف یو ګواه پاته پاتې شو.په دې وجه به نکاح منعقد نه وی .

ﷺدغه ډول دویمه مسئله ده.چه پلار د یو ګواه په موجودګئ کې د خپلې بالغې لور نکاح اوکړه.اوس که انجلی د نکاح په مجلس کې موجوده وی .نو نکاح به درست وی .په دې طریقه چې انجلی به عاقد او پلار به دوهم ګواه جوړولې شی .آوکه انجلی د نکاح په مجلس کې موجوده نه وی .نو په دې صورت کې انجلی عاقده ګرځول ممکن نه دی .او پلار به عاقد وی .اوس صرف یو ګواه پاته پاتې شو.په دې وجه نکاح درست نه ده.

ﷺصرف د څلورو ښځو ګواهی بغیر دسړی نه جائز نه ده.(قاضی خان)د ابن حزم ظاهری په نیز جائز ده.د دواړه ګواهانو لپاره د عاقدینو کلام په یو وخت کې اوریدل شرط دی .که یوګواه ایجاب اوقبول واوریدل،بیا نې دوهم ګواه ته واوږول.یا بل یوکس لاړو.او ګواه ته نې واوږول.نو جائز نه ده. د چاړا، او ګونګی ګواهی په دې شرط چې اوریدلې شی .جائز ده.د اوده شوی ،اود بالکل کڼ ګواهی جائز نه ده.د ګواهانو اوریدلو سره پوهیدل هم شرط دی .هم دا صحیح ده.د نشې په حالت کې ګواهی جائز ده.خو په دې شرط چې پوهیږی .اګرچه د هوش نه روسته یاده نه وی .کهٔ د الله او رسولﷺ په ګواهئ باندې نکاح اوکړی ، نو جائز ده.یوې ښځې د فلانی سړی په نکاح کې خان ورکړلو.یا ولی او یا فضولی نکاح اوکړه.او فلانې



سړې غائب دې.د هغه د اړخه یو فضولی نکاح قبول کړه.او ګواهانو واوریدله.بیا نې دې سړی ته خبر ورکړلو.او هغه اجازت ورکړو.حالانکه دغه وخت ګواهان نشته.نو جائز ده.
حاصل داچه د ایجاب اوقبول په وخت د ګواهانو حاضریدل شرط دی .اوکه د ایجاب اوقبول په وخت ګواهان نه وو.بیا کله چې سړی اجازت ورکړو.دغه وخت ګواهان حاضر وی .نو عقد به جائز نه وی .(البدائع) په نکاح کې شرط خیار،خیار رؤیت، خیارعیب د هیڅ چا لپاره ثابت نه دې.بلکه نکاح به جائز اوشرط به باطل وی .دغه ډول که ښائسته کیدل، یا باکره کیدل، یا تندرست کیدل شرط اوګرځولې شو.نو نکاح به جائز وی .او هیڅ شرط به ثابت نه وی .والله اعلم.

## فصل في بيان المحرمات

فصل دې د هغه ښځو (په بیان کښې کومې) چې حرامې شوی دی.

### د محرمه کیدلو اسباب او ددې اقسام

قَالَ فرمائی صاحب د قدوری لَا يَحِلُّ لِلرَّجُلِ جائز نه دی لپاره دسړی أَنْ يَتَزَوَّجَ چې نکاح اوکړی بِأُمِّهِ د مور خپلې سره وَلَا بِجَدَّاتِهِ اونه د انا (نیا) خپلې سره مِنْ قِبَلِ الرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ د سړې او د ښځو دا اړخه لِقَوْلِهِ تَعَالَى د امله د دې قول دالله تعالی نه حُرِّمَتْ عَلَيْكُمْ أُمَّهَاتُكُمْ حرامې شوی دی په تاسو باندې مندې (میاندې) ستاسو وَبَنَاتُكُمْ او لونړه ستاسو

**تشریح:-** هغه ښځې چې د هغوی سره نکاح حرام ده.په دوې [دوه] قسمه دی .یو هغه چې د هغوی سره هیڅ کله هم نکاح جائز نه ده.همیشه حرام ده.مثلاً مور، خور،وغیره. دوهم هغه چې دوی سره بالفعل حرام وی .څه وخت کې حلال کیدلې هم شی .لکه د غیر منکوحه، یا معتده وغیره.

بیا د محرمه کیدلو اووه اسبابه دی . ① قرابت خاصه ② نکاحی رشته ③ رضاعت ④ جمع کیدل ⑤ مالك کیدل ⑥ کفر ⑦ په آزاده باندې وینځه په نکاح کې راوستل،په کتاب الله کې هم په دې ترتیب سره بیان شوی دی .لکه ارشاددې.فرمائی چه،مور دچا د خیټې نه چې پیدا شوې.دې سره نکاح حلال نه ده.دغه ډول نیاګانې(یعنی د مور او پلار میاندې)اود مور پلار اناګانی (نیاګانې)وغیره حلال نه دی .په دلیل کې نې د قرآن پاك آیت پیش کړې دې.

وَالْجَدَّاتُ أُمَّهَاتٌ او اناګانی (نیاګانې) مندې دی إِذِ الْأُمُّ هِيَ الْأَصْلُ لُغَةً ځکه چې مور اصل دې د لغت په اعتبار سره وَثَبَتَتْ حُرْمَتُهُنَّ بِالْإِجْمَاعِ او ثابت شوې دې حرمت د دوی په اجماع د امت سره

**تشریح:-** خوپه دې باندې اشکال کیږی .چه په آیت کې د ،امهات، حرمت بیان کړې شوې دې.د نیاګانو نه دې بیان شوې.نو ددوی حرمت به څنګه ثابتیږی .ځواب ورکړې شو.چه په قرآن کې لفظ د ،ام، استعمال کړې شوې دې.په لغت کې د ، ام، معنی اصل او جرړه ده.نو اوس به مطلب دا وی .چه اصول حرام کړې شوی دی .او په اصول کې اناګانی (نیاګانې) یعنی د مور پلار مندې هم ګډ دی . دوهم ځواب دا ورکړې شوې دې.چه دَ میاندو حرمت په کتاب الله سره ثابت دې.اود نیاګانو حرمت په اجماع سره ثابت دې.اوس به هیڅ اشکال پاته نه پاتې کیږی .

### د لور حرمت

قَالَ وَلَا بِبِنْتِهِ لِمَا تَلَوْنَا او نۀ دَ خپلې لور سره،لکه چې مونږ آیت او لوستلو، وَلَا بِبِنْتِ وَلَدِهِ وَإِنْ سَفَلَتْ لِلْإِجْمَاعِ او نۀ دَ خپلِ اولاد دَ لور سره اګر که خکته وی ،دَ اجماع په وجه، وَلَا بِأُخْتِهِ وَلَا بِبَنَاتِ أُخْتِهِ وَلَا بِبَنَاتِ أَخِيهِ وَلَا بِعَمَّتِهِ وَلَا بِخَالَتِهِ اونۀ دَ خپلې خور سره او نه دَ لونړو دَ خور سره او نۀ دَ لونړو د رور سره او نه د پلار د خور سره او نه د مور د

خور سره‌لونړه یعنی نمسئ،اود لونړو لونړه یعنی نمسئ، هم قطعاً حرام دی .ددوی حرمت په اجماع سره ثابت دي.دغه ډول خور، خورځې، وریرې، ترورياني( یعنی د مور پلار خویندې) ټولې حرامې دی .ددوی حرمت په دي ذكر شوی آيت كي بيان كړې شوې دي.آيت ((حُرِّمَتْ عَلَيْكُمْ أُمَّهٰتُكُمْ وَبَنٰتُكُمْ وَأَخَوٰتُكُمْ وَعَمّٰتُكُمْ وَخٰلٰتُكُمْ وَبَنٰتُ الْأَخِ وَبَنٰتُ الْأُخْتِ)) یعنی حرام شوی دی په تاسو باندې، ستاسو میاندې، او لونړه،او خویندې،اود پلار خور(یعنی ترور)اود مورخور(یعنی ترور)اود خوی لونړه،اود لور لونړه، لِأَنَّ حُرْمَتَهُنَّ مَنْصُوْصٌ عَلَيْهَا فِي هٰذِهِ الْآيَةِ ځكه چې دَ دې ټولو حرمت په دې آيت كي منصوص عليها دي،

حل اللغة:① سلفت: لاندې ② خالة: د مور خور③ عمة: د پلار خور]

تشریح:- لور كومه چې دده د نطفې نه پیدا شوې ده.دا هم ددې ذكر شوی آيت په وجه حرام ده.دغه ډول د خامنو لونړه یعنی نمسئ،اود لونړو لونړه یعنی نمسئ، هم قطعاً حرام دی .ددوی حرمت په اجماع سره ثابت دي.دغه ډول خور، خورځې، وریرې، ترورياني( یعنی د مور پلار خویندې) ټولې حرامې دی .ددوی حرمت په دي ذكر شوی آيت كي بيان كړې شوې دي.آيت ((حُرِّمَتْ عَلَيْكُمْ أُمَّهٰتُكُمْ وَبَنٰتُكُمْ وَأَخَوٰتُكُمْ وَعَمّٰتُكُمْ وَخٰلٰتُكُمْ وَبَنٰتُ الْأَخِ وَبَنٰتُ الْأُخْتِ)) یعنی حرام شوی دی په تاسو باندې، ستاسو میاندې، او لونړه،او خویندې،اود پلار خور(یعنی ترور)اود مورخور(یعنی ترور)اود خوی لونړه،اود لور لونړه،

وَتَدْخُلُ فِيْهَا الْعَمَّاتُ الْمُتَفَرِّقَاتُ وَالْخَالَاتُ الْمُتَفَرِّقَاتُ او داخلې دی په دې كي مختلف ډول خویندې دَ پلار او مختلف ډول خویندې دَ مور وَبَنَاتُ الْإِخْوَةِ الْمُتَفَرِّقِيْنَ لِأَنَّ جِهَةَ الْاِسْمِ عَامَّةٌ او دَ مختلف ډول رونړو لونړه، ځكه چې جهت دَ اسم عام دي

تشریح:- په آيت كي مطلقا د ترورياںو(یعنی د مور پلار د خویندو)اود بنات الاخ ذكر دي.لهذا حقيقى ، علاتى ،او اخيافى ټولو ته به دا حكم ګډ وی .ځكه چې لفظ د ،عمة،او لفظ د ،خالة، وغیر ټولو ته عام دي.

### د خواښې حرمت

قَالَ وَلَا بِأُمِّ امْرَأَتِهِ الَّتِيْ دَخَلَ بِهَا أَوْلَمْ يَدْخُلْ او نه دَ خپلې ښځې دَ مور سره چې دَ دې دَ لور سره يې صحبت كړې وی او كه نه،

حل اللغة:① حجر:تربيت،پرورش، ② موضع:ځائې]

تشریح:- په دې عبارت كي د خواښې حكم بيان شوې دي.كه ښځې سره يې دخول كړې وی . اوكه دخول يې نه وی كړې.په دواړه صورتونوكي د خواښې سره نكاح حرام ده.دليل دادې.چه په قرآن كي د خواښې حرمت د دخول د قيد نه مطلق ساتلې شوې دي.نودا حكم به په خپل اطلاق باندې پاته پاتې وی .

ﷸ دويمه مسئله دا ذكر شوې ده.كه د داسې ښځې سره نكاح اوشوه.چه د ړومبى خاوند نه يې يوه لور راوړلې ده.داسې انجلۍ ته ربيبه وائی .دې ربيبې سره د نكاح په جواز كي دا تفصيل دي.چه د ښځې سره كه دخول شوې وی .نود ربيبه سره نكاح حلال نه ده.او كه دخول يې نه وی كړې.نو نكاح حلال ده.

لِقَوْلِهِ تَعَالَى { وَأُمَّهَاتُ نِسَائِكُمْ } مِنْ غَيْرِ قَيْدِ الدُّخُوْلِ ځكه چې ارشاد د الله تعالى دي او ميندې دَ ښځو ستاسو،بغير دَ قيد دَ صحبت نه، وَلَا بِبِنْتِ امْرَأَتِهِ الَّتِيْ دَخَلَ بِهَا لِثُبُوْتِ قَيْدِ الدُّخُوْلِ بِالنَّصِّ او نه دَ لور دَ خپلې هغې ښځې سره چې دَ هغې سره صحبت شوې وی ، د وجه د ثبوت دَ قيد دَ دخول نه په نص سره سَوَاءٌ كَانَتْ فِيْ حِجْرِهِ أَوْفِيْ حِجْرِ غَيْرِهِ خواه دغه جينى دَ ده په پرورش كي وی او كه دَ غير په پرورش كي وی ،

تشریح - دليل دا دې چه په كلام پاك كي قيد د دخول موجود دي.لكه چې ارشاد دي. ((وَأُمَّهٰتُكُمُ الّٰتِيْٓ أَرْضَعْنَكُمْ وَأَخَوٰتُكُمْ مِّنَ الرَّضَاعَةِ وَأُمَّهٰتُ نِسَآئِكُمْ وَرَبَآئِبُكُمُ الّٰتِيْ فِيْ حُجُوْرِكُمْ مِّنْ نِّسَآئِكُمُ الّٰتِيْ دَخَلْتُمْ بِهِنَّ)) اوددوی لونړه كومې چې



ستاسو په پرورش كي دی .كومې چې پيدا شوی دی .ستاسو دهغه ښځو نه دچاسره چې تاسو صحبت كړې دي.اوكه تاسو ددوی سره صحبت نه وی كړې.نو په تاسو هيڅ ګناه نشته ددوی سره په نكاح كولوكي .

لِأَنَّ ذِكْرَ الْحِجْرِ خَرَجَ مَخْرَجَ الْعَادَةِ لَا مَخْرَجَ الشَّرْطِ ځكه چې ذكر دَ پرورش دَ عادت په طور دي نه چې په طور دَ شرط دی وَلِهٰذَا اكْتَفٰى فِيْ مَوْضِعِ الْإِحْلَالِ بِنَفْيِ الدُّخُوْلِ او په دې وجه دَ حلالولو په موقع دَ دخول په نفى اكتفاء اوكړې شو.

تشریح:- علامه مرغينانى رحمه الله د يو اشكال ځواب وركړې دي.اشكال دادې.چه په كلام پاك كي قيد د دخول موجود دي.دغه ډول ،حجور، په معنى د غيږې او پرورش قيد هم موجود دي.ددې مطلب دادې.چه دا ربيبه كه ستاسو په پرورش كي وی .بيا خو نكاح حرام ده.خوكه د دوهم خاوند نه علاوه د بل چا په پرورش كي وی .نونكاح حلال كيدل پكار دی .حالانكه حكم ددې په خلاف دي.

ﷸځواب: په آيت كي د ،حجور، قيد قيد اتفاقى او قيد عادى دي.قيد احترازی نه دي.يعنى عام عادت هغه دي.چه د داسې قسمه بچو پرورش دوهم خاوند كوی .او مور خپلو وړو ماشومانو سره راځی .وجه دا ده.چه هركلهٔ قرآن دِ نكاح جواز بيان كړو.نو صرف د دخول په قيد باندې يې اكتفاء اوكړه.د،حجور، نفى يې ذكر نه كړله.كه دا قيد ملحوظ وې.نود جواز په موقع باندې به هم ددې نفى شوې وه.

### د پلار،نيكونو د منكوحې سره د نكاح حرمت

قَالَ وَلَا بِامْرَأَةِ أَبِيْهِ وَأَجْدَادِهِ لِقَوْلِهِ تَعَالَى وَلَا تَنْكِحُوْا مَا نَكَحَ آبَاؤُكُمْ مِنَ النِّسَاءِ او نه دَ خپل پلار نيكونو دَ ښځو سره،ځكه چې ارشاد باری تعالى دي،او مهٔ په نكاح كوی هغو لره چې ستا سو پلرونو په نكاح كړی وی . وَلَا بِامْرَأَةِ ابْنِهِ وَبَنِيْ أَوْلَادِهِ لِقَوْلِهِ تَعَالَى { وَحَلَائِلُ أَبْنَائِكُمُ الَّذِيْنَ مِنْ أَصْلَابِكُمْ }او نه دَ ځوئى دَ ښځې سره اود نوسو دَ ښځو سره.ځكه چې ارشاد باری تعالى دي او ښځې ستاسو دَ خامنو كوم چې ستاسو دَ پشت نه دی .

حل اللغة:① حلائل: جمع د حليل:ښځه ② ابناء: جمع د ابن، ځوئې ③ اصلاب:جمع د صلب،شا]

تشریح:- ددې عبارت حاصل دادې.چه دپلار او نيكونو(د مور پلار،اود پلار پلار) منكوحه سره هم نكاح حلال نه ده.په دليل كي يې آيت پيش كړې دی.دغه ډول د ځوی اود نمسى ښځې سره هم نكاح جائز نه ده.

وَذِكْرُ الْأَصْلَابِ لِإِسْقَاطِ اعْتِبَارِ التَّبَنِّيْ لَا لِإِحْلَالِ حَلِيْلَةِ الْاِبْنِ مِنَ الرَّضَاعَةِ او دَ اصلاب ذكر دَ اعتبار دَ تبنى دَ ساقطولو دَ پاره دې،نه چې دَ رضاعى ځوئى د ښځې د حلالولو دَ پاره

تشریح:- دلته كي هم په دليل كي آيت ذكر دي.خو په دې باندې اشكال كيږی .چه په آيت كي د ،اصلاب، د قيد نه معلوميږی .چه د رضاعى ځوی د ښځې سره نكاح حلال ده.حالانكه داسې نه ده.علامه مرغينانى رحمه الله په ځواب كي فرمائی .چه د ،اصلاب، قيد د متبنى يعنى (په ځوئى توب نيولې) اعتبار ساقطولو لپاره دي.د رضاعى ځوی ښځې حلالولو لپاره نه دي. لنډيز داچه د كوموخامنو ښځې ستاسو لپاره حرام دی .چه هغه ستاسو د شانه پيدا شوی وی .اوكوم چې ستاسو د شانه پيدا شوې نه دی .هغه دوې [دوه] قسمه دی . يو رضاعى ، دوهم متبنى خو د حديث نه معلوميږی .چه رضاعى زوې د نسبى ځوی پشان دي.ددې نه معلومه شوه.چه د ،اصلاب، په قيدسره صرف متبنى خارج شوې دي.لهذا د متبنى ښځه حلاله ده.

### رضاعى مور اوخور سره د نكاح حرمت

وَلَا بِأُمِّهِ مِنَ الرَّضَاعَةِ وَلَا بِأُخْتِهِ مِنَ الرَّضَاعَةِ او نه دَ خپلې رضاعى مور سره اونه رضاعى خور سره. لِقَوْلِهِ تَعَالَى وَأُمَّهَاتُكُمُ اللَّاتِيْ أَرْضَعْنَكُمْ وَأَخَوَاتُكُمْ ځكه ارشاد باری تعالى دي اوكومو ميندو چې تاسوله تې دركړې دي او دَ

تی خویندې. وَلِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ يَحْرُمُ مِنَ الرَّضَاعِ مَا يَحْرُمُ مِنَ النَّسَبِ([1]) اود ارشاد نبوی په وجه سره چې دَ رضاعت په وجه حرام دی هغه کوم چې دَ نسب په وجه حرام دی

**تشریح:-** مصنف رحمه الله په دې عبارت کې رضاعی محرمات بیان کړی دی .رضاعی مور چې یو ځاځکې شیدې ئې هم څکولی وی .د رضاعی خور سره نکاح حرام ده.په دلیل کې ئې د قرآن پاك آیت او حدیث پیش کړې دې.

## دوې [دوه] خویندې په یوه نکاح کې جمع کول

وَلَا يَجْمَعُ بَيْنَ أُخْتَيْنِ نِكَاحًا وَلَا بِمِلْكِ يَمِينٍ وَطْئًا او نه به جمع کوی دوې [دوه] خویندې په نکاح سره،او نه دَ ملك یمین په ذریعه په وطی سره

**تشریح:-** دوې [دوه] خویندې په نکاح کې جمع کول په دوې [دوه] قسمه دی . ① اول داچه دواړه خویندو سره په یوخائې یا وړاندې روسته نکاح اوکړی .نو دا نکاح درست نه ده.که دواړو سره په یو عقد کې نکاح شوی وی .نود دواړو نکاح باطل ده.اوکه وړاندې روسته شوې وی .نود اولې نکاح صحیح ده.اود دویمې باطل ده. ② دوهم صورت دادې.چه په ملك کې کومې وینځې دی .دواړه خویندې دی .نو دواړه په ملك کې جمع کول جائز دی .خود دواړو سره وطی کول جائز نه دی .حاصل داشو.چه د دوې [دوه] خویندو د نکاح په طور جمع جائز نه ده.اود دوې [دوه] وینځو په ملك کې جمع کول د وطی په طریقه جمع کول جائز نه دی .خود دواړو مالك جوړیدلې شي .

لِقَوْلِهِ تَعَالَى وَأَنْ تَجْمَعُوا بَيْنَ الْأُخْتَيْنِ لکه چې ارشاد باری تعالی دې،او دا چې جمع کړی دوې [دوه] خویندې. وَلِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ فَلَا يَجْمَعَنَّ مَاءَهُ فِي رَحِمِ أُخْتَيْنِ ([2]) او د ارشاد نبوی په وجه چې کوم سړې په الله او په ورځې دَ آخرت ایمان لری ،هغه د نه جمع کوی خپلې او به په رحم دَ دوو خویندو کې

**تشریح:-** دلیل د الله تعالی قول دې. ((وَأَنْ تَجْمَعُوا بَيْنَ الْأُخْتَيْنِ)) یعنی ، په تاسو باندې حرام شوی دی چې جمع کړئ دوې [دوه] خویندې په نکاح کې ، دوهم نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی ..چه کوم کس په الله تعالی او په ورځ د آخرت باندې ایمان لری .نودې دې خپلې اوبه د دوې [دوه] خویندو په رحمونوکې هیڅ کله نه جمع کوی ، په فیروز دیلمی کې حدیث دې.چه زه د نبی کریم ﷺ په خدمت کې حاضرشوم.عرض مې کړل.چه ما اسلام راوړلو.او زما په نکاح کې دوې [دوه] خویندې دی .نبی کریم ﷺ اوفرمائیل.چه ته په دواړوکې یوه خوښه کړه.

## د وینځې خور سره نکاح کول

فَإِنْ تَزَوَّجَ أُخْتَ أَمَةٍ لَهُ قَدْ وَطِئَهَا صَحَّ النِّكَاحُ نو که نکاح ئې او کړه دَ خپلې داسې وینځې دَ خور سره چې وطی ئې ورسره کړې وه نو نکاح صحیح ده لِصُدُورِهِ مِنْ أَهْلِهِ مُضَافًا إِلَى مَحَلِّهِ ځکه چې دغه صادر شوې دې خپل اهل نه

[1]) من حدیث إبن عباس رضي الله عنهما أخرجه البخاری فی الشهادات باب ۷ رقم ۲٦٤٥ ومسلم فی الرضاع رقم ۱۲)

۲) غربه الزیلعی رحمه الله بهذا اللفظ ثم نقل عدة أحادیث فمنها حدیث ام حبیبة رضي الله عنها قالت یارسول الله ﷺ إنکح إختی قال ﷺ أوتحبین ذلک قلت نعم،لست لک بمخلیه وأحب من شرکتی فی خیرأختی قال ﷺ فإنها لا تحل لی قلت فإنی أخبرت أنک تخطب درة بنت أبی سلمة قال لوأنها لم تکن ربیتی فی حجری ما حلت لی إنها إبنة أخی من الرضاعة أرضعتنی وأباها ثوبیة فلا تعرضن علی بناتکن ولا إخوانکن الحدیث أخرجه البخاری فی النکاح باب ۲۰ رقم ۵۰۹۹ ومسلم فی الرضاع رقم ۱ وأبوداود فی النکاح باب ٦ رقم ۲۰۵۵ والترمذی فی الرضاع باب ۱ رقم ۱۱٤۷ والنسائی رقم ۳۰۹٦ وأحمد فی المسند (٦/٤٤)_



منسوب شوې خپل محل ارخ ته وَإِذَا جَازَ لَا يَطَأُ الْأَمَةَ وَإِنْ كَانَ لَمْ يَطَأِ الْمَنْكُوحَةَ لِأَنَّ الْمَنْكُوحَةَ مَوْطُوءَةٌ حُكْمًا او چې نکاح جائز شونو دَ وینځې سره به وطی نه کوی ،اګر چې د منکوحې سره ئې وطی نه وی کړی ، ځکه چې منکوحه حکماً موطوءَ ده، وَلَا يَطَأُ الْمَنْكُوحَةَ لِلْجَمْعِ او دَ منکوحې سره به وطی نه کوی دَ جمع په وجه سره،

**حل اللغة:** ① الموطوة: وطی کړې شوې ② المرقوقة: هغه څوك چې رق یعنی غلامی پرې واقع شوې وی مراد ترې وینځه ده ]

**تشریح:-** صورت د مسئلې دادې.چه د یوکس موطوءه وینځه ده.ددې وینځې خور دبل کس مملوکه ده.دې کس ددې په اجازت سره نکاح اوکړه.نودا نکاح جائز ده.دلیل دادې.چه دا نکاح د داسې عاقد نه صادر شوه.چه د نکاح لیاقت لری .او منسوب د نکاح محل ارخ ته.په دې وجه به نکاح منعقد وی .

د نکاح د جواز نه روسته د خپلې وینځې سره هم وطی نشی کولې.اګرچه د منکوحه سره ئې وطی نه وی کړې.ځکه چې منکوحه په حکم د موطوءه کې وی .دغه ډول به د منکوحه سره هم وطی نه کوی .ځکه چې په دې دواړه صورتونوکې وطیاً جمع کول لازمیږی .

إِلَّا إِذَا حَرَّمَ الْمَوْطُوءَةَ عَلَى نَفْسِهِ مګر کله چې ئې موطوءَ پخان حرامه کړه لِسَبَبٍ مِنَ الْأَسْبَابِ فَحِينَئِذٍ يَطَأُ الْمَنْكُوحَةَ لِعَدَمِ الْجَمْعِ وَطْئًا په څه سبب سره نو دغه وخت د منکوحې سره به وطئی کولی شي دَ وطیٔ دنه جمع کیدو وجه سره وَيَطَأُ الْمَنْكُوحَةَ إِنْ لَمْ يَكُنْ وَطِئَ الْمَمْلُوكَةَ لِعَدَمِ الْجَمْعِ وَطْئًا او وطی کولای شي دَ منکوحې سره که دَ مملوکې سره ئې وطی نه وی کړی ،دَ وطی دَ نه جمع کید و په وجه سره إِذِ الْمَرْقُوقَةُ لَيْسَتْ مَوْطُوءَةً حُكْمًا ځکه چې مملوکه وینځه حکماً موطوءَ نه ده

**تشریح:-** البته که موطوءه په خپل ځان باندې د څه سبب په وجه حرام کړی .مثلاً خرڅه ئې کړی .یا ، هبه مع التسلیم، ئې کړی .نو اوس د منکوحې سره وطی کولې شی .ځکه چې اوس په دواړه خویندو کې وطیاً جمع کول نه لازمیږی .اوکه مملوکه سره ئې مطلقاً وطی نه وی کړې.نود منکوحه سره وطی کولې شی .ځکه چې منکوحه نه حقیقتاً موطوءه ده،اونه حکماً موطوءه ده.نو په دې صورت کې د ،جمع بین الاختین وطیاً ،خرابی نه لازمیږی .والله اعلم

## دوې [دوه] خویندو سره په جدا عقدونوکې نکاح،او په دوی کې تفریق

فَإِنْ تَزَوَّجَ أُخْتَيْنِ فِي عُقْدَتَيْنِ وَلَا يَدْرِي أَيَّتُهُمَا أُولَى فُرِّقَ بَيْنَهُ وَبَيْنَهُمَا نو که نکاح ئې او کړو دَ دوو خویندو سره په دوې [دوه] عقدونو کې او دا معلومه نه وه چې اولنی پکې کومه ده نو د سړی او د دغو دواړو په مینځ کې به تفریق او کړې شی . لِأَنَّ نِكَاحَ إِحْدَاهُمَا بَاطِلٌ بِيَقِينٍ، وَلَا وَجْهَ إِلَى التَّعْيِينِ لِعَدَمِ الْأَوْلَوِيَّةِ ځکه چې په دوی کې د یوې نکاح په یقین سره باطل دې او دَ یوې دَ متعین کاوه څۀ وجه نشته دَ عدم اولویت په وجه وَلَا إِلَى التَّنْفِيذِ مَعَ التَّجْهِيلِ لِعَدَمِ الْفَائِدَةِ أَوْ لِلضَّرَرِ فَتَعَيَّنَ التَّفْرِيقُ او په جهالت سره دَ نافذ کاوه هم څۀ وجه نشته دَ فائدې دَ نه کیدو یا دَ ضرر په وجه سره نو تفریق متعین شو،

**حل اللغة:** ① التعیین: معین کول ② التجهیل: ناپوهی ③ التفریق: جلا کول]

**تشریح:-** صورت د مسئلې دادې.چه دوې [دوه] خویندو سره په دوې [دوه] عقدونوکې نکاح اوشی .اودا معلومه نه وی .چه د کومې یوې سره وړاندې اود کومې یوې سره روسته شوې ده.نو په داسې صورت کې به قاضی د خاوند او دواړو خویندو په مینځ کې تفریق کوی .او دا تفریق به طلاق بائن وی .دلیل دا دې.چه په دې دواړوکې د یونکاح یقینی طور باندې جائز اود یوبه یقینی طور باندې باطل ده.اوس صرف دوې [دوه] صورتونه دی .یو داچه د یوې نکاح په معین طور سره نافذ کړې شی .اود یوې باطله کړې شی . دوهم داچه په جهالت سره د دواړو نکاح نافذ کړې شی .خودا دواړه صورتونه ممکن نه دی .اول خو په دې وجه چې په

داسي كاوه سره ،ترجيح بلا مرجح،لازميږي . دوهم صورت په دې وجه ممكن نه دې.چه اول خو په داسې كاوه سره فائده نشته.ځكه چې د نكاح مقصود وطى حلالول او تناسل دې.او په دې صورت كي دا مقصود نه حاصليږي .دويمه خبره داده.چه د دواړو ښځو په دې كې ضرر دې.ځكه چې دواړه ښځې به په يوه نفقه باندې گزاره كوى .او دواړه به محبوسې پاتې شى .د بل چاسره به نكاح نشى كولې.

وَلَهُمَا نِصْفُ الْمَهْرِ لِأَنَّهُ وَجَبَ لِلْأُولَى مِنْهُمَا، وَانْعَدَمَتِ الْأَوْلَوِيَّةُ لِلْجَهْلِ بِالْأَوَّلِيَّةِ او دې دواړو له به نيم مهر وى .ځكه چې نيم مهر په دې دواړو كې اولې لره واجب شوې دې او اولويت معدوم شو د اوليت د مجهول كيدو په بنا ، فَيَنْصَرِفُ إِلَيْهِمَا، وَقِيلَ لَا بُدَّ مِنْ دَعْوَى كُلِّ وَاحِدَةٍ مِنْهُمَا أَنَّهَا الْأُولَى نو نيم مهر دواړو ته را اوگرځيد و اوويلى شوى دى چې په دوى كې د هرې يوې دعوى كول ضرورى دى چې دا اُولى ده ،أَوِ الْاِصْطِلَاحِ لِجَهَالَةِ الْمُسْتَحِقَّةِ.يا دې دواړه صلح اوكړى ځكه چې مستحقه معلومه نه ده

**تشريح:-** ددې دواړو ښځو مهر كه برابر وو.او تفريق هم، قبل الدخول، وى .نو دواړو ته به نصف مهر وركولې شى .او دواړه به ئې نيم په نيمه تقسيموى .چه د دواړو په برخه كې به ربع ربع راشى .دليل دادې.چه نصف مهر به په دې دواړو كې دهغه يوې لپاره واجب وى .كومه چې په دوى كې رومبۍ وى .او دا معلومه نه ده.چه رومبۍ كومه يوه ده.نود عدم اوليت په وجه به هيڅ يوې ته ترجيح نشى وركولې.نو نيم مهر به دواړو ته وركولې شى .د بعض حضراتو رائې داده.چه په دواړو كې دې هره يوه دعوه اوكړى .چه رومبۍ زه يم.چه مدعيه ته ددې دعوې په بنا (بنياد) باندې وركړې شى .يا دې دواړه خپلوكې صلح اوكړى .چه په نيم كې به دواړه شريك وى .ځكه چې د اصل مستحقه علم نشته.

### د جمع بعض حرام صورتونه

وَلَا يَجْمَعُ بَيْنَ الْمَرْأَةِ وَعَمَّتِهَا أَوْ خَالَتِهَا أَوِ ابْنَةِ أَخِيهَا أَوِ ابْنَةِ أُخْتِهَا او نه به جمع كوى ښځه او د دې د پلار خور او يا د مور خور او يا وريره او يا خورزه

**حل اللغة:** ① عمة. د پلار خور ② خالة د مور خور ③ اخت خور]

**تشريح:-** په دې عبارت كې مصنف رحمه الله په نكاح كې د جمع د حرام كيدلوڅو صورتونه بيان كړى دى .مثلاً ښځه او ددې د پلار خور(ترور) جمع كول حرام دى .دغه ډول ښځه اوددې د مورخور(ترور)،ښځه او ددې وريره، ښځه او ددې خورزه،جمع كول حرام دى .

لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ لَا تُنْكَحُ الْمَرْأَةُ عَلَى عَمَّتِهَا وَلَا عَلَى خَالَتِهَا وَلَا عَلَى ابْنَةِ أَخِيهَا وَلَا عَلَى ابْنَةِ أُخْتِهَا[1] د وجه د ارشاد نبوى نه چې نكاح د نه شى كولې په ښځه باند د دې د پلار د خور او نه د مور د خور او نه د رور د لور او نه د خور د لورسره، وَهَذَا مَشْهُورٌ يَجُوزُ الزِّيَادَةُ عَلَى الْكِتَابِ بِمِثْلِهِ او دا حديث مشهور دې د دې پشان حديث باندې په كتاب الله زياتې جائز دې

**تشريح:-** په دليل كې علامه مرغينانى رحمه الله د نبى كريم ﷺ ارشاد نقل كړې دې.وې گورئ.خو په دې باندې اشكال كيږى .هغه داچه په قرآن پاك كې د ټولو محرماتو بيانولو نه روسته ((وَأُحِلَّ لَكُمْ مَا وَرَاءَ ذَٰلِكُمْ)) ذكر شوې دې.او قرآن د محرماتو په بيان كې ددې ښځو ذكر نه دې كړې.نودا واړه صورتونه جائز كيدل پكار دى خواب:دا حديث كوم چې د جمع په حرمت كې پيش شوې دې.حديث مشهور دې.او په حديث مشهور.سره په كتاب الله باندې زياتوالې كيدلې شى .

### د جمع بين المراتين په حرمت كې قاعده

[1] من حديث أبي هريرة رضي الله عنه أخرجه أبوداود فى النكاح باب ١٢ رقم ٢٠٦٥ والترمذى فى النكاح باب ٣٠ رقم ١١٢٦ وابن ماجه فى النكاح باب ٣١ والنسائى فى النكاح باب ٤٧ ورواه أيضاً فى السنن الكبرى (٢٩٣/٣) رقم ٥٤٢٤)_



وَلَا يَجْمَعُ بَيْنَ امْرَأَتَيْنِ لَوْ كَانَتْ إِحْدَاهُمَا رَجُلًا لَمْ يَجُزْ لَهُ أَنْ يَتَزَوَّجَ بِالْأُخْرَى و نه په جمع كوى داسې دوو ښځو لره چې كه شى په دوى كې يو سړې نو جائز به ورلره نه وى چې نكاح او كړى د دغې بلې سره.

**حل اللغة:** ① المحرمية. حراموالې ② الرضاع. ماشوم ته تې وركول ③ القطعية. يقينى والې ④ القرابة. خپلولى ،رشته دارى ]

**تشريح:-** صاحب د كتاب رحمه الله د ،جمع بين المراتين، په سلسله كې يوه قاعده ذكر كړې ده.قاعده داده.چه كومې دوې [دوه] ښځې په نكاح كې جمع كول وى .په دې كې هره يوه مذكر(نر) فرض كړې شى .چه ددې دواړو په خپل مينځ كې نكاح شرعاً درست ده.او كه نه ده؟كه درست ده.نو دواړه جمع كولې شى .اوكه صحيح نه وى .نود داسې دوې [دوه] ښځو په نكاح كې جمع كول هم صحيح نه دى .مثلاً انجلې او ددې د پلار خور(ترور)جمع كول حرام دى .ځكه كه انجلې مذكر فرض كړې شى . نو په دوى كې به د ترور او وراره رشته وى .او كه ترور مذكر فرض كړې شى .نو په دوى كې به د اكا او خورزې رشته وى .او په دې دواړو صورتونوكې په خپلو كې نكاح ناجائز ده.نودا دواړه په نكاح كې جمع كول هم ناجائز دى .هم په دې باندې نور صورتونه هم قياس كولې شى .

لِأَنَّ الْجَمْعَ بَيْنَهُمَا يُفْضِي إِلَى الْقَطِيعَةِ وَالْقَرَابَةُ الْمُحَرَّمَةُ لِلنِّكَاحِ مُحَرِّمَةٌ لِلْقَطْعِ ځكه چې د دوى په مينځ كې جمع كول قطع رحم ته رسى ،او كوم قرابت چې حرامو ونكې د نكاح دې هغه حراموونكې د قطع رحم دې، وَلَوْ كَانَتِ الْمَحْرَمِيَّةُ بَيْنَهُمَا بِسَبَبِ الرَّضَاعِ يَحْرُمُ او كه محرميت په دې دواړو كې د رضاعت په سبب سره وى بيا ئې هم جمع كول حرام دى لِمَا رَوَيْنَا مِنْ قَبْلُ لكه چې مور مخكې حديث روايت كړې دې

**تشريح:-** دليل دادې.چه داسې دوې [دوه] ښځې په نكاح كې جمع كول د قطع رحم سبب جوړيږى .په دې طريقه چې د نكاح نه روسته به دا دواړه په خپلو كې بنړې وى .او په بنو كې عداوت او دښمنى په عامه توگه وى .او قطع رحمى حرام ده.نو كوم چې د حرام سبب وى . هغه به هم حرام وى .نو د داسې دوې [دوه] ښځو جمع كول هم حرام دى .هم دا علامه مرغينانى رحمه الله اوفرمائيل.چه كوم د نكاح قرابت حرامكونكې وى .هم هغه د قطع رحم حرامونكې دې.په كومو صورتونوكې چې د نسبى قرابت په وجه چې ،جمع بين المراتين، حرام ده.په دغه صورتونوكې د رضاعت په وجه هم جمع بين المراتين حرام ده.دليل هم هغه حديث دې.كوم چې وړاندې تير شو.يعنى [يحرم من الرضاع ما يحرم من النسب]

### ښځه او ددې د بنې لور په نكاح كښې جمع كول

وَلَا بَأْسَ بِأَنْ يَجْمَعَ بَيْنَ امْرَأَةٍ وَبِنْتِ زَوْجٍ كَانَ لَهَا مِنْ قَبْلُ او په دې كې ځه باك نشته چې جمع كړى ښځه او د دې د تير خاوند لور لره لِأَنَّهُ لَا قَرَابَةَ بَيْنَهُمَا وَلَا رَضَاعَ ځكه چې د دوى په مينځ كې نه قرابت شته او نه رضاعت

**تشريح:-** دا مسئله په ماقبل اصول باندې متفرع ده.مسئله داده.چه د ښځې او ددې د مخ كښيني خاوند د رومبۍ ښځې نه چې كومه لور ده.دا په نكاح كې جمع كولې شى .مثلاً هنده د زيد سره نكاح اوكړه.اود زيد يوه لور د زيد مخكنۍ ښځې فاطمه نه هم ده.بيا هنده زيد ته طلاق بائن وركړو.اوس كه خالد د زيد لور زينب او هنده سره نكاح اوكړه.او جمع ئې كړل.نو هيڅ باك نشته.ځكه چې د هنده او زينب په مينځ كې نه قرابت شته او نه رضاعت شته.

وَقَالَ زُفَرُ رحمه الله لَا يَجُوزُ لِأَنَّ ابْنَةَ الزَّوْجِ لَوْ قَدَّرْتَهَا ذَكَرًا لَا يَجُوزُ لَهُ التَّزَوُّجُ بِامْرَأَةِ أَبِيهِ امام زفر رحمه الله فرمائى چې جائز نه دى ځكه چې د خاوند لور كه سړې فرض شى نو جائز نه دې ورلره نكاح كول د ښځې د پلار سره، قُلْنَا: امْرَأَةُ الْأَبِ لَوْ صَوَّرْتَهَا ذَكَرًا جَازَ لَهُ التَّزَوُّجُ بِهَٰذِهِ مونږ وايو چې ښځه د پلار كه سړې فرض كړې نو د دې جينى سره ورته نكاح جائز دې وَالشَّرْطُ أَنْ يُصَوَّرَ ذَٰلِكَ مِنْ كُلِّ جَانِبٍ او شرط خو دا دې چې دې عدم جواز لره د هر اړخ نه فرض كړې

**تشریح:-** حضرت امام زفر رحمه الله فرمائی .چه جائز نه ده.د عدم جواز وجه داده.چه د زوج یعنی زید لور زینب، که ښځه فرض کړې شي .نو ددوی په خپل مینځ کي نکاح جائز نه ده.ځکه چې هنده دده د پلار منکوحه ده.اود پلار منکوحه سره نکاح جائز نه ده.نو جمع کول هم جائز نه دی .خو زموږ د اړخه ځواب دادې.چه د پلار ښځه که سړې فرض کړې شي .نو ددوی په خپل مینځ کښي نکاح جائز ده.ځکه چې دا انجلی به ددې اجنبی سړي لور وی .اود، جمع بین المراتین، حرام کیدلو شرط دادې. چې د دواړه اړخه سړې فرض کیدلو په صورت کي په خپلوکي نکاح حرام وی .حالانکه دلته کي داسې نه ده. والله اعلم بالصواب

**په زنا سره د حرمت مصاهرت ثبوت اوعدم ثبوت**

> **قَالَ وَمَنْ زَنَى بِامْرَأَةٍ حَرُمَتْ عَلَيْهِ أُمُّهَا وَبِنْتُهَا** او چا چې دَ یوې ښځې سره زنا او کړه نو دَ هغې مور او لور پر حرامه شوه،

**حل اللغة:** ① **اصول:** جمع داصل، پلار، نیکه، دغه ډول وریسې پورته خه ② **فروع:** جمع د فرع ده ځوئي لور، نمسي دغه ډول وریسې لاندې خه ③ **استمتاع:** فائده اخستل]

**تشریح:-** په زنا سره حرمت مصاهرت ثابتیږی او که نه؟ په دې اړه کي اختلاف دې.د احنافو رحمهم الله مذهب دا دې.چه په زنا سره حرمت مصاهرت ثابتیږی .نو په زانی باندې به د مزنیه اصول او فروع حرام وی .او په مزنیه باندې به د زانی اصول اوفروع حرام وی .یعنی نیاګانې(دمور پلار میاندې) مراد وغیره دی .اود فروع نه نوسی (د لونړو اوخامنو لوریانې) وغیره مراد دی .

> **وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رحمه الله الزِّنَا لَا يُوجِبُ حُرْمَةَ الْمُصَاهَرَةِ لِأَنَّهَا نِعْمَةٌ فَلَا تُنَالُ بِالْمَحْظُورِ** او امام شافعی رحمه الله وئیلی دی چې زنا موجب دَ حرمت دَ مصاهرت نهٔ ده ځکه مصاهرت نعمت دې نو دا په ممنوع فعل سره نهٔ حاصلیږی

**تشریح:-** دشوافعو رحمهم الله مذهب دادې.چه په زنا سره حرمت مصاهرت نه ثابتیږی .نو ددوی په نیز به د زانی اصول اوفروع د مزنیه لپاره حلال وی .اود مزنیه اصلو اوفروع به د زانی لپاره حلال وی . د دلیل حاصل دادې.چه زنا فعل حرام اومعصیت دې.او مصاهرت یعنی د سخرګنۍ رشته یو نعمت دې.ځکه چې الله تعالی د احساناتو بیانولو په موقع باندې د مصاهرت ذکر فرمائیلې دې. لکه چې ارشاد دې ((وَهُوَ الَّذِي خَلَقَ مِنَ الْمَاءِ بَشَرًا فَجَعَلَهُ نَسَبًا وَصِهْرًا)) یعنی الله تعالی هغه ذات دې. چې د اوبو نه ئې سړې پیداکړو.بیا ئې دې د نسب والا اود سخرګنۍ رشتې والا جوړکړو.امام شافعی رحمه الله فرمائی .چه فعل حرام د هیڅ یو نعمت حاصلولو سبب نه جوړیږی .نو په زنا سره حرمت مصاهرت نه ثابتیږی .

> **وَلَنَا أَنَّ الْوَطْءَ سَبَبُ الْجُزْئِيَّةِ بِوَاسِطَةِ الْوَلَدِ حَتَّى يُضَافَ إِلَى كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا كَمَلًا** زموږ دلیل دا دې چې وطی سبب دَ جزئیت دې په ذریعه دَ ولد سره تر دې چې بچی لره په دوی کې دَ هریو اړخ ته مکمل منسوب کولای شی **وَلَنَا أَنَّ الْوَطْءَ سَبَبُ الْجُزْئِيَّةِ بِوَاسِطَةِ الْوَلَدِ حَتَّى يُضَافَ إِلَى كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا كَمَلًا** نو دَ موطوءَ اصول او فروع دَ واطی دَ اصولو او فروعو پشان شو، او دَ غسې برعکس . **وَالِاسْتِمْتَاعُ بِالْجُزْءِ حَرَامٌ إِلَّا فِي مَوْضِعِ الضَّرُورَةِ وَهِيَ الْمَوْطُوءَةُ** او دَ خپل جزء نه نفع اغستل حرام دی ، بغیر دَ محل دَ اړتیا نه او دغه موطوءَ ده،

**تشریح:-** زموږ د دلیل حاصل دادې.چه د حرماتو په استحقاق کي ولد اصل دې.یعنی ولد که مؤنث وی .نو په ولد باندې د واطی پلار او زوې حرام وی .اوکه ولد مذکر وی .نو د موطوءه مور او لور به په دې ولد باندې حرام وی .بیا به دا حرمت متعدی وی .د ولد په طرفین یعنی د واطی او موطوءه په طرف،نود موطوءه اصول اوفروع به په واطی باندې،اود واطی اصول او فروع به په موطوءه باندې حرام وی .ځکه چې ولد د واطی او موطوءه په مینځ کي اتحاد او جزئیت پیداکړې دې.هم دغه وجه ده.چه ولد واحد په مکمله طریقه د واطی په اړخ هم منسوب کولې شی .لکه وئیلې شی .چه دا د فلانی سړی زوې دې.او په مکمله طریقه باندې موطوءه اړخ ته هم منسوب کولې شی .وئیلې شی .چه دا بچې د فلانۍ ښځې دې. نوددې ولد په واسطه سره



واطی جزء شو د موطوءه،او موطوءه جزء شو د واطی .نود واطی اصول اوفروع به د موطوءه اصول اوفروع شمارلې شی .اود موطوءه اصول اوفروع به د واطی اصول اوفروع شمارلې شی .او استمتاع بالجزء حرام ده.نود واطی لپاره به د موطوءه مور او لور حرام وی .اوپه موطوءه باندې به د واطی پلار او زوې حرام وی .خو په دې باندې یو اشکال کیږی .هغه داچه هرکله دا ثابته شوه.چه موطوءه د ولد په واسطه سره د واطی جزء دې.نود یو بچی پیدا کیدلو نه روسته دوباره موطوءه دده لپاره حلال کیدل نه دی پکار،حالانکه حکم ددې خلاف دې؟ځواب* اصل هم دغه دې.چه استمتاع بالجزء حرام ده.خو دلته کي ضرورة حرج د فع کاوه لپاره اجازت ورکړې شوې دې.چه د نکاح مقصد توالد او تناسل فوت نشی .او دا بالکل داسې ده.لکه څنګه چې حضرت آدم علیه السلام باندې ددوی لونړه حرام وې.خو حواء علیها السلام ددې قاعدې نه د اړتیا په وجه مستثنی کړې شوه.

> **وَالْوَطْءُ مُحَرِّمٌ مِنْ حَيْثُ إِنَّهُ سَبَبُ الْوَلَدِ لَا مِنْ حَيْثُ إِنَّهُ زِنًا** .او وطی په دې حیثیت محرم ده،چه دَ غه سبب دَ ولد ده نه په دې حیثیت سره چې دغه زناء ده .

**تشریح:-** د امام شافعی رحمه الله د دلیل ځواب دادې.چه وطی د زنا په حیثیت سره د حرمت مصاهرت سبب نه دې.بلکه په دې حیثیت کي وطی سبب د ولد دې.نو وطی د ولد قائم مقام شو.نو په حقیقیت کي ولد سبب دې.د حرمت مصاهرت،او په ولد کي هیڅ ممانعت او معصیت نشته.قصور چې څه هم دې.د مور دې،ولد کوم چې سبب جوړ شوې دې.دده هیڅ قصور نشته.والله اعلم بالصواب

**په مس اونظر سره د حرمت مصاهرت ثبوت اوعدم ثبوت**

> **وَمَنْ مَسَّتْهُ امْرَأَةٌ بِشَهْوَةٍ حَرُمَتْ عَلَيْهِ أُمُّهَا وَابْنَتُهَا** او چا لره چې یوې ښځې په شهوت سره لاس وروړو نو په ده دَ دغې ښځې مور او لور حرامې شوې ،

**حل اللغة:** ① **الة:** ذکر ② **الانتشار:** غتیدل، خوریدل، کلکیدل، لکیدل ③ **مفض:** بوتلونکې ④ **الدبر:** د غتیو بولوخانې ⑤ **داع:** دعوت ورکونکې]

**تشریح:-** مس عام ده.که په قصد سره وی .اوکه خطاء یا نسیان سره وی .که په خوشۍ وی .اوکه بغیر د خوشۍ وی .که په شهوت سره وی .نو زموږ په نیز به حرمت مصاهرت ثابت شی .د امام شافعی رحمه الله په نیز به ثابت نه وی .دا خبره واضحه ده.چه دلته کي په مس حلال کي اختلاف بیانول مقصود دی .په مس حرام کي نه.ځکه چې هرکله د امام شافعی رحمه الله په نیز وطی حرام د حرمت موجب نه ده.نو مس حرام به په درجه اولی د حرمت موجب نه وی .ددوی اختلاف په مس حلال کي دې.او ددې اخلاف ثمره داده.چه زید د هنده سره د نکاح نه روسته د وطی کاوه نه وړاندې طلاق ورکړو.نود زید لپاره د هنده مور حلال ده.اوکه د طلاق نه وړاندې په زید اوهنده کي یوکس بل په شهوت سره مس کړل،یا په فرج او ذکر باندې ئې په شهوت سره نظر اوکړو.او وطی ئې نه وی کړې.نو زموږ په نیز به حرمت مصاهرت ثابت وی .

> **وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رحمه الله لَا تَحْرُمُ، وَعَلَى هَذَا الْخِلَافِ مَسُّهُ امْرَأَةً بِشَهْوَةٍ** امام شافعی رحمه الله فرمائی چې حرام نه شو او په دې اختلاف بنا دی دَ سړی ښځې لره په شهوت سره لاس وروړل، **وَنَظَرُهُ إِلَى فَرْجِهَا وَنَظَرُهَا إِلَى ذَكَرِهِ عَنْ شَهْوَةٍ** او عورت دَ ښځې ته ئې کتل او کتل دَ ښځې ذکر دَ سړی ته په شهوت سره

**تشریح:-** امام شافعی رحمه الله فرمائی .چه ثابت به نه وی .دغه ډول اختلاف په دې صورت کي دې.که سړی ښځه په شهوت سره مس کړه.یا سړی په شهوت سره ښځه مس کړه.د ښځې شرمګاه ته ئې اوکتل،یا ښځې د سړی شرمګاه ته په شهوت سره اوکتل.

**لَهُ أَنَّ الْمَسَّ وَالنَّظَرَ لَيْسَا فِي مَعْنَى الدُّخُولِ، وَلِهٰذَا لَا يَتَعَلَّقُ بِهِمَا فَسَادُ الصَّوْمِ وَالْإِحْرَامِ** ده دلیل دا دی چې مسه او نظر نه دی په معنی دَ دخول کې په دې وجه په دې پورې فساد دَ روژې او احرام او وجوب دَ غسل متعلق کیږی نه نو دا نه ملحق کیږی په دخول پورې،

**تشریح:-** دامام شافعی رحمه الله دلیل دادې چه مس اونظر د دخول په حکم کې نه دې.ځکه چې کوم احکام په دخول سره متعلق کیږی .دې دواړو سره نه متعلق کیږی .مثلاً د روژې په حالت کې دخول مفسدِصوم او مفسدِ احرام دې.او په دخول سره غسل واجبیږی .خو مس بشهوة،او نظر بشهوة سره نه روژه ماتیږی .او نه احرام ماتیږی .او نه غسل واجبیږی .نو مس اونظر د دخول سره نه لاحق کیږی .ځکه چې د ملحق لپاره ضروری دی .چه د ملحق به په معنی کې وی .

**وَلَنَا أَنَّ الْمَسَّ وَالنَّظَرَ سَبَبٌ دَاعٍ إِلَى الْوَطْءِ فَيُقَامُ مُقَامَهُ فِي مَوْضِعِ الْاِحْتِيَاطِ** او زموږ دلیل دا دې چې مسه او نظر دا سې سبب دې چې داعی دې وطی ته نو دَ وطی قائمقام کیږی په ځائې دَ احتیاط کې ،

**تشریح:-** زموږ دلیل دادې چه مس او نظر داسې سببونه دی .چه ،داعی الی الوطی ، دی .نو موږ احتیاطاً، داعی الی الوطی ، د وطی قائم مقام اوګرځولو.او په دې مو د وطی حکم اولګولو.

د امام شافعی رحمه الله د دلیل ځواب دادې.چه په مس او نظرسره که د فساد صوم وغیره احکام ثابتیږی .نومس او نظر به هم حقیقی وطی وه.حالانکه موږ دې ته حقیقی وطی نه وایو.زموږ د مذهب په تائیدکې د ام هانی رضی الله عنها حدیث هم دې.[عن رسول الله ﷺ من نظر إلى فرج إمرأة حرمت عليه أمها وبنتها] دوهم حدیث دې.[عن إبن عمر رضی الله عنه أنه قال إذا جامع الرجل المرأة قبلها اولمسها بشهوة او نظر إلى فرجها بشهوة حرمت على أبيه وإبنه وحرمت عليه أمها و إبنتها] (عینی شرح هدایه)

**ثُمَّ الْمَسُّ بِشَهْوَةٍ أَنْ تَنْتَشِرَ الْآلَةُ أَوْ تَزْدَادَ انْتِشَارًا هُوَ الصَّحِيحُ** بیا په شهوت سره مسه کول دا دی چې آله مُنتشره شی یا ئې انتشار زیات شی ،دا صحیح ده،

**تشریح:-** علامه مرغینانی رحمه الله د مس بشهوة تعریف کړې دې.چه آله منتشر شی .چه د مس اونظر نه وړاندې منشره نه وه.اوکه د وړاندې نه منتشر وه.نوچه انتشار زیات شی .د تعریف په سلسله کې هم دا قول صحیح دې.بعض مشائخو رحمهم الله د شهوت تعریف داسې کړې دې.چه د سړی زړه ښځې اړخ ته مائل شی .او جماع اړخ ته شوق پیدا شی .

**وَالْمُعْتَبَرُ النَّظَرُ إِلَى الْفَرْجِ الدَّاخِلِ وَلَا يَتَحَقَّقُ ذٰلِكَ إِلَّا عِنْدَ اتِّكَائِهَا** او معتبر فرج داخل ته کتل دی او. دا نهٔ متحقق کیږی مګر په وخت دَ تکیه وهلو دَ ښځې کې ،

**تشریح:-** په نظر، الی الفرج، کې د فرج داخل اړخ ته کتل معتبر دی .فرج خارج اړخ ته نه.او فرج داخل اړخ ته کتل به هغه وخت متحقق کیږی .چه کله ښځه په برېنډه دیوال وغیره ته ډډه اولګوی .او دواړه ګونډئ اودروی .او کینی .که ښځه نیغه ناسته وی .یا ولاړه وی .یا ئې ډډه لګولې وی .خو پښې (خپې) ئې خورې کړې وی .او ناسته وی .بیا دې اړخ ته اوګوری .نو حرمتِ مصاهرت به نه ثابتیږی .

**وَلَوْ مَسَّ فَأَنْزَلَ فَقَدْ قِيلَ إِنَّهُ يُوجِبُ الْحُرْمَةَ، وَالصَّحِيحُ أَنَّهُ لَا يُوجِبُهَا** او که مسه ئې کړه بیا ئې انزال او شو نو وئیلی شوی دی چې حرمت واجبوی او صحیح دا ده چې نهٔ واجبوی

**تشریح:-** که مس ئې اوکړو. بیا ئې انزال اوشو.نو حرمتِ مصاهرت به ثابتیږی او که نه؟ د بعضو رائې خو داده.چه په دې صورت کې به هم حرمتِ مصاهرت ثابت وی .وجه داده.چه انزال د وطی معنی مؤکد کوی .نو په حرمت کې به زیاتوالې وی .صحیح قول دادې.چه په دې صورت کې حرمتِ مصاهرت نه ثابتیږی .



**لِأَنَّهُ بِالْإِنْزَالِ تَبَيَّنَ أَنَّهُ غَيْرُ مُفْضٍ إِلَى الْوَطْءِ** ځکه په انزال کیدو سره دا واضحه شوه چې دغه مفضی الی الوطی نه وه، **وَعَلٰى هٰذَا إِتْيَانُ الْمَرْأَةِ فِي الدُّبُرِ** او دَ ښځې په شاکې جماع کول هم په دې اختلاف باند دی

**تشریح:-** ځکه چې مس بشهوة ،مفضی الی الوطی ، کیدلو په وجه د وطی قائم مقام وی .او په انزال سره دا خبره ښکاره شوه.چه دا مس، مفضی الی الوطی ، نه ده.نود وطی قائم مقام به هم نه وی .هم په دې حکم کې د ښځې په مقعد کې وطی کول دی .یعنی که د ښځې په مقعد ئې کې وطی اوکړه.او انزال اوشو.نو موجب د حرمت نه ده.او که انزال اونشو.نود حرمت موجب دې.

## د معتده ښځې خور سره د نکاح حکم

**وَإِذَا طَلَّقَ امْرَأَتَهُ طَلَاقًا بَائِنًا أَوْ رَجْعِيًّا لَمْ يَجُزْ لَهُ أَنْ يَتَزَوَّجَ بِأُخْتِهَا حَتّٰى تَنْقَضِيَ عِدَّتُهَا** که خپلې ښځې له ئې طلاق ورکړهٔ بائن یا رجعی نو د دهٔ د پاره جائز نه دی د دې د خور سره نکاح کول تر دې چې عدت ئې او تیر شی ،

**حل اللغة:** ① **طلاق بائن:** هغه طلاق چې د طلاق په کنائی الفاظو سره واقع شوې وی لکه ته زما نه جلا ئې او نیت ئې د طلاق وی ② **طلاق رجعی:** هغه یو یا دوې [دوه] طلاقه چې د هغې نه روسته خاوند ته بغیر د نکاح تازه کاوه نه د جماع اجازت وی ③ **اعمال:** عمل ورکول]

**تشریح:-** مسئله داده.چه یوکس خپلې ښځې ته طلاق بائن یا طلاق رجعی ورکړو.نو اوس دا سړې ددې معتده خور سره دعدت په موده کې نکاح کولای شی اوکه نشی کولې؟ د احنافو رحمهم الله مذهب خو دادې. چې نکاح جائز نه ده.

**وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رحمه الله إِنْ كَانَتِ الْعِدَّةُ عَنْ طَلَاقٍ بَائِنٍ أَوْ ثَلَاثٍ يَجُوزُ لِانْقِطَاعِ النِّكَاحِ بِالْكُلِّيَّةِ إِعْمَالًا لِلْقَاطِعِ** امام شافعی رحمه الله فرمائی چې عدت که دَ طلاق بائنو وه یا د درې طلاقو وه نو جائز دې دَ انقطاع دَ نکاح په وجه سره بالکلیه قاطع له دَ عمل ور کاوه په وجه، **وَلِهٰذَا لَوْ وَطِئَهَا مَعَ الْعِلْمِ بِالْحُرْمَةِ يَجِبُ الْحَدُّ** که وطی ئې کړه سره دَ علم نه په حرمت نو حد به واجب وی ،

**تشریح:-** امام شافعی رحمه الله فرمائی .که دا ښځه په طلاق بائن یا د درې طلاقو په وجه په عدت کې ده.نو ددې د خورسره نکاح جائز ده. دلیل حاصل دادې.چه د قاطع نکاح یعنی د طلاق موجود کیدلو په وجه نکاح بالکلیهٔ منقطع شوه.ځکه چې هرکله قاطع موجود شو.نو ددې اثر به هم یقیناً متحقق وی .دنکاح بالکلیه منقطع کیدلو دلیل هم دادې.چه دا سړې که حرام ګنړی .اود معتده سره وطی اوکړی .نو حد به واجب وی .

**وَلَنَا أَنَّ نِكَاحَ الْأُولٰى قَائِمٌ لِبَقَاءِ بَعْضِ أَحْكَامِهِ كَالنَّفَقَةِ وَالْمَنْعِ وَالْفِرَاشِ وَالْقَاطِعُ تَأَخَّرَ عَمَلُهُ** زموږ دلیل دادې.چه رومبئ نکاح پاته ده.د نکاح د احکامو د پاته پاتې کیدلو په وجه.لکه نفقه، او منع د وتلو نه،او دَ فراش نه او دَ قاطع عمل مؤخر شو **وَلِهٰذَا بَقِيَ الْقَيْدُ، وَالْحَدُّ لَا يَجِبُ عَلٰى إِشَارَةِ كِتَابِ الطَّلَاقِ** په دې وجه چې قید دَ نکاح پاته دې او حد نه دې واجب بنا په اشاره دَ کتاب الطلاق **وَعَلٰى عِبَارَةِ كِتَابِ الْحُدُودِ يَجِبُ لِأَنَّ الْمِلْكَ قَدْ زَالَ فِي حَقِّ الْحِلِّ** او بنا په عبارتِ دَ کتاب الحدود واجب دې ځکه چې ملك زائل شو دَ حلت وطی په حق کې، **فَيَتَحَقَّقُ الزِّنَا وَلَمْ يَرْتَفِعْ فِي حَقِّ مَا ذَكَرْنَا فَيَصِيرُ جَامِعًا** نو زنا متحقق شوه،او دَ مذکوره امورو په حق کې ملك مرتفع نه دې نو جامع بین الاختین شو

**تشریح:-** زموږ دلیل دادې.چه د معتده نکاح پاته ده.لکه څنګه چې د منکوحه کیدلو په حالت کې وه.او خاوند ته دا اختیار دې.چه د کور نه په وتلو باندې پابندی اولګوی .دغه ډول که په دوې [دوه] کاله کې دننه بچې پیدا شو.نود فراش کیدلو په وجه ددې سړی نه نسب هم ثابت وی .او پاتې شوه داخبره چې قاطع نکاح موجود شو.نو ددې ځواب دادې.چه د قاطع عمل د عدت پوره کیدلو پورې مؤخر شو.د نکاح حکم پاته پاتې کیدلو په وجه.او ددې ځواب چې په وطی کولوسره حد واجبیږی .اول خو موږ نه منو.چه په دې وطی باندې

حد واجبيږي .لکه چې د مبسوط په ،كتاب الطلاق، کي اشاره ملاويږي .او كه اومنو.چه حد به واجب وي. لکه چې د مبسوط په ،كتاب الحدود، كي صراحتاً موجود دی .نو موږ خواب ورکوو.چه د وطی حلال کیدلو په حق کي ملك نكاح زائل شو.نودا وطی به زنا وی .اود ذکر شوی امورو په حق کي ملك نه زائليږي .نو نكاح من وجه پاته ده.او من وجه ختمه شوه.او هرکله چې نكاح من وجه پاتـه ده.نودا كس كـه ددې معتدې د خورسره نكاح اوکړی .نو، جامع بين الاختين فی النکاح، به وی .او په نكاح کي جمع بين الاختين ناجائز ده.اگرچه نكاح فی الجمله پاته وی .والله اعلم بالصواب

## د مولا خپلې وينځې سره،يادښځې خپل غلام سره د نکاح ممانعت

وَلَا يَتَزَوَّجُ الْمَوْلَى أَمَتَهُ وَلَا الْمَرْأَةُ عَبْدَهَا او مالك به دَ خپلې ونځې سره نكاح نهٔ کوی ،او نه ښځه دَ خپل غلام سره. لِأَنَّ النِّكَاحَ مَا شُرِعَ إِلَّا مُثْمِرًا ثَمَرَاتٍ مُشْتَرَكَةً بَيْنَ الْمُتَنَاكِحَيْنِ ځکه چې نكاح نهٔ دې مشروع شوې مګر دَ داسې ثمرو سره بارآور کیدل کوم چې په زوجینو کي مشترك دي وَالْمَمْلُوكِيَّةُ تُنَافِي الْمَالِكِيَّةَ او مملوكيت د مالكيت منافی دي فَيَمْتَنِعُ وُقُوعُ الثَّمَرَةِ عَلَى الشَّرِكَةِ نو په شرکت به دَ ثمرې حصول ممتنع وی .

حل اللغة① مثمر:فائده ورکونکې ② يمتنع: منع كيږی ]

تشريح:- مولا به خپلې وينځې سره نكاح نه کوی .كه د وينځې د کل مالك وی .او كه د بعض مالك وی .دغه دول به ښځه د خپل غلام سره نكاح نه کوی .كه ښځه د پوره غلام مالكه وی .او كه د بعض غلام مالكه وی .په دواړه صورتونوكي نكاح ممنوع ده.كه مالك او مملوك يوځاي اوسيدل.او نكاح ني اوکړه.نو باطل به وی .آئمه اربعه هم ددې قائل دی .دليل دادې.چه نكاح د داسې منافعو او فوائدو په لحاظ سره مشروع شوې ده.چه هغه د دواړو ښځې خاوند په مينځ کي مشترك وي .بعض منافع ښځې ته حاصليږی . مثلاً د ښځې لپاره مهر،کسوه او نفقه واجبيږی .او په سړی باندې حكماً وطی هم واجبيږی .د ښځې د رضامندئ نه بغير سړی لپاره عزل جائز نه دې.د سړی د ،مقطوع الذکر،اود ،عنين، كيدلو په صورت کي ښځې ته خيار فسخ هم حاصل وی .او بعض منافع سړی ته حاصليږی .مثلاً د نكاح نه روسته د ښځې په نفس باندې قدرت حاصليدل.دښځې لپاره د سړی په كور کي قيام کول،د کور دننه کار کول،مثلاً خوراك پخول،کپړې وينځل،د بچو تربيت کول،بچو تـه شيدې ورکول وغيـره، لنډيز داده.چـه د نكاح پـه ذكـر شـوی دواړه صورتونوكي مالكيت او مملوكيت جمع کيدل لازميږی .حالانکه په دې دواړو کي منافات دي.ځكه چې مالكيت تقاضا كوی د قاهريت.او مملوكيت تقاضا كوی ،د مقهوريت.او ددې دواړو په منافات کي هيڅ شبه نشته.نو هرکله چې داسې ده.نو په شرکت باندې به د ثمره حصول ممتنع وی . په دې باندې يو اشكال پکار.ځكه چې کله مملوك د آزادې ښځې سره نكاح اوکړی .نود ناكح كيدلو په وجه به مالكيت هم ثابتيږی .نوپه دې صورت کي هم د مالكيت او مملوكيت جمع کيدل لازميږی . خواب د قياس تقاضا هم دغه ده.چه د مملوك نكاح مطلقاً درست نه وی .خود اړتيا په وجه خلاف قياس جائز گرځولې شوې ده.(عينى شرح هدايه)

## د کتابيه ښځې سره نکاح

وَيَجُوزُ تَزْوِيجُ الْكِتَابِيَّاتِ لِقَوْلِهِ تَعَالَى او جائز دې دَ کتابيه ښځو سره نكاحِ كول : ځکه چې دَ حق تعالى ارشاد دي وَالْمُحْصَنَاتُ مِنَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ أَيِ الْعَفَائِفُ او پاکدامنې ښځې د هغو نه كومو ته چې كتاب ورکړې شوې دي،محصنات يعني پاكدامنې، وَلَا فَرْقَ بَيْنَ الْكِتَابِيَّةِ الْحُرَّةِ وَالْأَمَةِ عَلَى مَا نُبَيِّنُ مِنْ بَعْدُ إِنْ شَاءَ اللَّهُ تَعَالَى او نشته توپير په کتابيه آزاده او وينځه کي لكه چې موږ به بيان كړو انشاء الله تعالى .

حل اللغة① محصنات:جمع د محصنة، پاكدامنه ښځه ② الحرة: اصيله،آزاده ښځه ③ الامة: وينځه]



تشريح:- كتابيات، د كتابيه جمع ده.ددې مذكر كتابی دې.كتابی هغه کس دې.چه په نبی باندې ايمان لري .اود كتاب اقرار كوی .په آئمه اربعه کي د آزاد کتابيه سره نكاح كولوكي د هيڅ چا اختلاف نشته.دكتابيه وينځې سره پـه نكـاح كولـوكـي اختـلاف دې.چـه ددې بيـان روسـته راروان دې.د ليـل د الله تعـالی قـول دې.،ستاسو لپاره حلال كړې شو.د اهل کتابو ښځې هغه ښځې چې پاكدامنې وی ، په آيت کي د ،عفت، قيد عادةً ذکر کړې شو.دجواز نكاح لپاره شرط نه دې.

## مجوسيه اوصابيه ښځې سره د نکاح حکم

وَلَا يَجُوزُ تَزْوِيجُ الْمَجُوسِيَّاتِ لِقَوْلِهِ عليه الصلاة والسلام او جائز نه دې نكاح كول دَ آتش پرستو ښځو سره ،ځكه چې ارشاد نبوی ﷺ دې سُنُّوا بِهِمْ سُنَّةَ أَهْلِ الْكِتَابِ غَيْرَ نَاكِحِي نِسَائِهِمْ وَلَا آكِلِي ذَبَائِحِهِمْ(۱) دوی سره سلوك كوی دَ اهل کتابو پشان پغير دَ نكاح كاوه دَ دوی دَ ښځو سره او دَ ذبحې په خوړو کي قَالَ وَلَا الْوَثَنِيَّاتِ لِقَوْلِهِ تَعَالَى وَلَا تَنْكِحُوا الْمُشْرِكَاتِ حَتَّى يُؤْمِنَّ او دَ بت پرستو ښځو سره،ځكه د حق تعالى ارشاد دي،چه دَ مشركو ښځو سره نكاح مهٔ کوی تر دې چې ايمان راوړی وَيَجُوزُ تَزْوِيجُ الصَّابِئَاتِ إِنْ كَانُوا يُؤْمِنُونَ بِدِينِ نَبِيٍّ وَيُقِرُّونَ بِكِتَابٍ او جائز دې نكاح كول دَ صابيه ښځو سره كه هغوی ايمان درلودی دَ چا نبی په دين او منلو ئ څهٔ كتاب لره. لِأَنَّهُمْ مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ وَإِنْ كَانُوا يَعْبُدُونَ الْكَوَاكِبَ وَلَا كِتَابَ لَهُمْ لَمْ تَجُزْ مُنَاكَحَتُهُمْ ځكه چې دغه دَ اهل کتابو نه دی ، او كه عبادت ئ كاوه دَ ستورو،او دَ دوی سره څهٔ كتاب نهٔ وه نو جائز دې ورسره نكاح كول لِأَنَّهُمْ مُشْرِكُونَ ځكه چې دغه مشركان دی

حل اللغة① الوثنيات: جمع د ثنية: بت پرسته

تشريح:- د آتش پرستو ښځو سره نكاح كول په اتفاق سره ناجائز دی .دليل دادې.نبی کريم ﷺ فرمائيلي دی .،چه د اهل کتابو سره كومه معامله كوئ.دمجوسو سره هم هغه معامله كوئ.سوا ددې نه چې د مجوسو ښځوسره نكاح مه كوئ.او ددوی ذبيحه مه خورئ.حاصل داچه دمجوسو ښځو سره نكاح مه كوئ.او ددوی ذبيحـه مـه خورئ.ددې نـه عـلاوه پـه امـان وركولـو،او جزيـه اخستلوكـي د اهـل كتـابو پـه شـان معاملـه كوئ.داحديث په مختلف طريقو سره نقل دې.اود بت پرستو ښځې سره هم نكاح كول ناجائز دی .دليل د قرآن پاك آيت دې.،چه شرك كونكو ښځو سره نكاح مه كوئ،

وَالْخِلَافُ الْمَنْقُولُ فِيهِ مَحْمُولٌ عَلَى اشْتِبَاهِ مَذْهَبِهِمْ او كوم اختلاف چې په دې اره کي منقول دې هغه دَ دوی دَ مذهب په مشتبه کيدو مخمول دې، فَكُلٌّ أَجَابَ عَلَى مَا وَقَعَ عِنْدَهُ وَعَلَى هَذَا حِلُّ ذَبِيحَتِهِمْ نو هر امام دَ هغې مطابق خواب كړې دې كوم چې دَ دهٔ په نزد حق معلوم شوې دې او په دې اختلاف دَ دوی دَ ذبحې حال بنا دې.

تشريح:- د صابيه ښځو سره د نكاح په جواز او عدم جواز کي اختلاف دې.امام ابوحنيفه رحمه الله د جواز قائل دې.او صاحبين رحمهما الله د عـدم جواز قائـل دی .په حقيقت کي دا اختلاف د صابی په تعريف او تفسير کي دې.امام صاحب رحمه الله فرمائی .چه صابی هغه دې.چه په نبيانو عليهم السلام کي په يونبی باندې ايمان لري .او د يو آسمانی كتاب اقرار كوی .دې وخت کي به صابی اهل كتاب شمارلې شی .اود اهل كتابو ښځوسره نكاح جائز ده.نو صابيه سره به هم نكاح جائز وی .صاحبين رحمهما الله فرمائی .چه صابی د ستورو عبادت كوی .اود هيڅ يو آسمانی كتاب اقرار نه كوی .نو دوی به د بت پرستو په حكم کي وی .لكه څنګه چې د بت پرستو سره

۱) غربه الزيلعی رحمه الله بهذا اللفظ ثم نقل عن محمدبن حسن بن على أن النبی ﷺ كتب إلى مجوس هجر يعرض عليهم الإسلام فمن أسلم قبل منه ومن لم يسلم ضربت عليه الجزية غيرناكحی نسائهم ولاآكلی ذبائحهم أخرجه ابن ابی شيبة فی النكاح ومصنف ابن عبدالرزاق فی كتاب أهل الكتاب (نصب الرأية ۲۱۸/۳)_

نکاح جائز نه ده.دغه ډول به صابیه ښځو سره هم نکاح جائز نه وی .

## د احرام په حالت کې نکاح

قَالَ وَيَجُوزُ لِلْمُحْرِمِ وَالْمُحْرِمَةِ أَنْ يَتَزَوَّجَا فِي حَالَةِ الْإِحْرَامِ دَ مُحرم او مُحرمې دَ پاره په حالت دَ احرام کې نکاح کول جائز دی

تشریح:- احرام والا ښځه وی .اوکه سړی.د احرام په حالت کې زموږ په نیز نکاح کول جائز دی .امام شافعی رحمه الله ناجائز وائی .امام مالك او امام احمد رحمهما الله هم ددې قائل دی .دغه ډول که محرم د یوکس ولی جوړ شی. او نکاح اوکړی .نو زموږ په نیز جائز دی .

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رحمه الله لَا يَجُوزُ وَتَزْوِيجُ الْوَلِيِّ الْمُحْرِمِ وَلِيَّتَهُ عَلَى هَذَا الْخِلَافِ امام شافعی رحمه الله فرمائی جائز نه دی او دَ ولی محرم دَ خپلې مولیه په نکاح ورکول په دې اختلاف بنا دې لَهُ قَوْلُهُ عليه الصلاة والسلام. لَا يَنْكِحُ الْمُحْرِمُ وَلَا يُنْكِحُ(۱) دَ شافعی رحمه الله دلیل ارشاد نبوی دې چې محرم د نه نکاح کوی او نه د په نکاح ورکولې شی .

تشریح:- د امام شافعی رحمه الله په نیز ناجائز دی . دلیل د نبی کریم ﷺ فرمان[لاینکح المحرم ولا ينكح] دې.په دې حدیث کې ړومبې ،ینکح،د حاء په فتح سره دې.(د ضرب نه)او دوهم د حاء په ضمه سره دې.(د انکاح نه)د ړومبی معنی ده پخپله نکاح کول.د دوهم معنی ده د بل نکاح کول.لکه چې ،طعم،خوراك خوړل،او ،اطعام، په بل خوراك خوړل.نو اوس به د حدیث مطلب دا وی .نبی کریم ﷺ اوفرمائیل. چې ،محرم به نه خپله نکاح کوی .او نه به ولی جوړیږی .چه د بل نکاح اوکړی ،د مسلم او ابوداؤد په روایت کې د ،ولا یخطب، اضافه ده.یعنی د احرام په حالت کې به کویژدن هم نه کوی .امام احمد بن حنبل رحمه الله په خپل صحیح کې روایت کړې دې.[ولا یخطب بمکة]یعنی په مکه کې به کویژدن نه کوی .ددې حدیث نه ثابتیږی .چه د احرام په حالت کې خپله نکاح کول،یا د بل نکاح کول د واړه ممنوع دی .

وَلَنَا مَا رُوِيَ أَنَّهُ عليه الصلاة والسلام تَزَوَّجَ بِمَيْمُونَةَ وَهُوَ مُحْرِمٌ(۲) زموږ دلیل دا روایت دې چې نبی کریم ﷺ دَ میمونه رضي الله عنها سره نکاح په احرام کې کړې وه.

تشریح:- زموږ دلیل دادې.ابن عباس رضي الله عنه روایت کړې دې.چه نبی کریم ﷺ د حضرت میمونه رضي الله عنها سره د محرم کیدلو په حالت کې نکاح اوکړه.او امام بخاری رحمه الله اضافه کړې ده.[وبنی بها وهو حلال وماتت بسرف] یعنی نبی کریم ﷺ د میمونه سره نکاح اوکړه.حالانکه نبی کریم ﷺ محرم وو.او ددې سره ئې زفاف اوکړو.(د خپلې بی بی سره د واده شپه تیرول) حالانکه نبی کریم ﷺ حلال وو.اود میمونه رضي الله عنها انتقال په مقام سرف کې اوشو.بعض حضرات د لطیفه په طوربانډې بیان کړی دی .چه د میمونه رضي الله عنها واده هم په مقام سرف کې اوشو.شب زفاف ئې هم په مقام سرف کې تیرکړو.اود حضرت میمونه رضي الله عنها انتقال هم په مقام سرف کې اوشو.ددې حدیث نه معلومیږی .چه نبی کریم ﷺ دمیمونه رضي الله عنها سره د احرام په حالت کې نکاح اوکړه.

وَمَا رَوَاهُ مَحْمُولٌ عَلَى الْوَطْءِ او امام شافعی رحمه الله چې کوم روایت پیش کړې دې دغه په وطی بانډ محمول دې

۱) من حدیث عثمان بن عفان رضي الله عنه أخرجه مسلم فی النکاح رقم ٤١ وأبوداود فی المناسک باب ۳۸ رقم ۱۸٤۱ والترمذی فی الحج باب ۲۳ وأحمد فی المسند (۱/٤۸)_

۲) من حدیث ابن عباس رضي الله عنهما أخرجه البخاری فی الصید باب ۱۲ ومسلم فی النکاح رقم ٤٦ وأبوداود فی المناسک باب ۲۱ والترمذی فی الحج باب ۲٤ والنسائی فی المناسک باب ۹۰ وابن ماجه فی المناسک رقم ۱۹٦٥ والدارمی فی المناسک باب وأحمد فی المسند(۱/۲٤٥)_



تشریح:- د امام شافعی رحمه الله د روایت کړې شوی حدیث ځواب دادې.چه په دې حدیث کې د نکاح لغوی معنی (وطی ) مراد ده.اوس به مطلب دا وی .چه د احرام په حالت کې وطی کول ممنوع دی .عقد نکاح ممنوع نه ده.په دې صورت کې به د حدیث ژباړه دا وی .چه محرم به نه وطی کوی .او نه به محرمه ته په وطی بانډې قدرت ورکوی .

دوهم ځواب دادې.چه په حدیث کې نهی تنزیهی مراد ده.تحریمی مراد نه ده.اوس به مطلب دا وی .چه د احرام په حالت کې خپله نکاح کول،یا د بل نکاح کول مناسب نه دی .که اوکړې شی .نو منعقد به وی . زموږ د مذهب تائید په قیاس سره هم کیږی .ځکه چې نکاح د نورو عقدونو د بیع وشراء وغیره په شان ده. لکه څنګه چې په بیع وغیره کې ایجاب اوقبول کیږی .دغه ډول په نکاح کې هم د ایجاب اوقبول تلفظ کیږی .نود احرام په حالت کې چې لکه څنګه نور عقدونه جائز دی .دغه ډول به نکاح هم جائز وی .

د انصاف خبره دا ده.چه د حضرت امام شافعی رحمه الله مذهب قوی دې.ځکه چې د امام شافعی رحمه الله پیش کړې حدیث قولی دې.اود احنافو رحمهم الله پیش کړې حدیث فعلی دې.اود حدیثینو د تعارض په وخت حدیث قولی مقدم وی .په حدیث فعلی بانډې ددې نه علاوه د نبی کریم ﷺ میمونه رضي الله عنها سره د احرام په حالت کې نکاح کول مختلف فیه دی .لکه چې پخپله میمونه بنت الحارث رضي الله عنها فرمائی .چه ماسره رسول الله ﷺ نکاح اوکړه. او موږ دواړه حلال وو.مسلم، ابوداؤد ،ترمذی ،او ابن ماجه دا حدیث روایت کړې دې.

## د وینځې سره دنکاح جواز اوعدم جواز

وَيَجُوزُ تَزْوِيجُ الْأَمَةِ مُسْلِمَةً كَانَتْ أَوْ كِتَابِيَّةً او جائز دې دَ وینځې سره وادهٔ کول مسلمانه وی او که کتابیه وی ،

تشریح:- د وینځې سره د نکاح په جواز اوعدم جواز کې اختلاف دې.زموږ په نیزمطلق وینځې سره نکاح کول جائز دی .که هغه مسلمانه وی .اوکه کتابیه وی .

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رحمه الله لَا يَجُوزُ لِلْحُرِّ أَنْ يَتَزَوَّجَ بِأَمَةٍ كِتَابِيَّةٍ امام شافعی رحمه الله فرمائی چې نهٔ دی جائز آزاد لره چې نکاح او کړې دَ کتابیه وینځې سره، لِأَنَّ جَوَازَ نِكَاحِ الْإِمَاءِ ضَرُورِيٌّ عِنْدَهُ وجه دا دهٔ چې دَ دهٔ په نزد دَ وینځې جواز ضرورة دې، لِمَا فِيهِ مِنْ تَعْرِيضِ الْجُزْءِ عَلَى الرِّقِّ، وَقَدِ انْدَفَعَتِ الضَّرُورَةُ بِالْمُسْلِمَةِ ځکه چې د وینځې سره په وادهٔ کاوه کې خپل جزء لره په غلامی پیش کول دی ،او اړتیا په مسلمانه وینځه پوره کیږی . وَلِهَذَا جَعَلَ طَوْلَ الْحُرَّةِ مَانِعًا مِنْهُ په دې وجه سره قدرت په حره بانډ دَ نکاح دَ اَمې نه مانع مقرر کړې شوې دې

حل اللغة: ① اماء:جمع د امة، وینځه ② ارقاق: غلام جوړول

تشریح:- د امام.شافعی رحمه الله مذهب دادې.چه کتابیه وینځې سره نکاح جائز نه ده.امام مالك رحمه الله هم ددې قائل دې.او په یو روایت کې امام احمد رحمه الله هم ددې قائل دې. دلیل دادې.چه د وینځوسره د نکاح جواز ضرورة ثابت دې.ځکه چې د وینځې سره د نکاح مطلب دادې.چه خپل جزء رقیق(مملوك) جوړول غواړی .ځکه چې د غیر وینځې نه چې کوم اولاد کیږی .په شریعت کې به هغه هم د غیرمملوك وی .او رقیق جوړول په حقیقت کې هلاکول دی .نو ګویا د وینځې سره نکاح کول،خپل جزء هلاکول دی .او خپل جزء رقیق جوړول،هلاکول ممنوع دی .نود وینځې سره نکاح کول ناجائزکیدل پکار دی .خود شدت حاجت په وجه ضرورة جائز اوګرځولې شوه.هرکله چې دا ثابته شوه.چه د وینځو سره نکاح کول ضرورة ثابت دی .او قاعده ده.چه کوم شی ضرورة ثابت وی .هغهٔ د اړتیا په اندازه ثابت وی .او اړتیا د یوې مسلمانې وینځې سره په نکاح کاوه پوره شو.نود کتابیهٔ ښځې سره دنکاح کاوه هیڅ اړتیا نشته.په دې وجه امام شافعی رحمه الله ،قدرت علی الحرة، د وینځې سره د نکاح کاوه نه مانع ګرځولې دې.آیت [وَمَنْ لَمْ يَسْتَطِعْ مِنْكُمْ طَوْلًا أَنْ يَنْكِحَ الْمُحْصَنَاتِ] یعنی کوم کس چې په تاسوکې د آزادې مؤمنه سره د نکاح قدرت نه لری .نودې په خپلو مؤمنو وینځو کې د چاسره نکاح اوکړی .دَ آیت مفهوم مخالف به دا وی .که د آزاد مسلمانې ښځې سره د نکاح قدرت وی .نو

مسلماني وینځې سره هم د نکاح اجازت نشته؟ ددې ځواب دادې.چه په ایت کې افضل او اولی بیان کړې شوې دې.یعنی په حره باندې د قدرت باوجود د وینځې سره نکاح بهتر نه ده.خو که اوئې کړه.نو منعقد به وی .

وَعِنْدَنَا الْجَوَازُ مُطْلَقٌ لِإِطْلَاقِ الْمُقْتَضِي او زمونږ په نزد جواز دَ نکاح مطلق دې دَ مقتضی دَ مطلق کیدو په وجه وَفِيهِ امْتِنَاعٌ عَنْ تَحْصِيلِ الْجُزْءِ الْحُرِّ لَا إِرْقَاقُهُ او دَ وینځې سره په نکاح کاوه کې آزاد جزء لره دَ حاصلولو نه منع کول دی نه چې دې لره غلام جوړول وَلَهُ أَنْ لَا يُحَصِّلَ الْأَصْلَ فَيَكُونُ لَهُ أَنْ لَا يُحَصِّلَ الْوَصْفَ او هر کله چې دَ ده دَ پاره دَ دې اجازت دې چې اصل حاصل نه کړی نو دَ دې به هم اجازت وی چې وصف حاصل نه کړی

**تشریح:**- زمونږ دلیل دادې.چه دوینځې سره د نکاح جواز مطلق دې.په دې وجه چې د نکاح تقاضا مطلق ده.مثلاً [فَانْكِحُوا مَا طَابَ لَكُمْ مِنَ النِّسَاءِ] او [وَأُحِلَّ لَكُمْ مَا وَرَاءَ ذَٰلِكُمْ] په دې آیتونوکې مطلق ښځو سره د نکاح جواز عام خودلې شوې دې.آزادې سره وی .او که د وینځې سره وی .

ﷲ باتې شود امام شافعی رحمه الله دا ونیل.چه وینځې سره نکاح کول خپل جزء رقیق جوړول دی .نو ددې ځواب دادې.چه د وینځې سره په نکاح کولوکې خپل جزء رقیق جوړول مقصود نه دی .بلکه آزاد جزء حاصلولو نه منع کیدل دی .او شریعت ددې خبرې اجازت ورکړې دې.چه د سره اصل جزء حاصل نکړی .یعنی د ښځې په رضامندۍ سره عزل اوکړی .چه اصل بچې هډو پیدا نشی .نود حریت نه حاصلولو اجازت به په درجه اولی وی .والله اعلم بالصواب

## د آزادې په موجودګۍ کې ، وینځې سره د نکاح حکم

وَلَا يَتَزَوَّجُ أَمَةً عَلَى حُرَّةٍ لِقَوْلِهِ عليه الصلاة والسلام او نکاح د نۀ کوی دَ وینځې سره په حُره باند ځکه ارشاد نبوی دې لَا تُنْكَحُ الْأَمَةُ عَلَى الْحُرَّةِ(١) چه په نکاح د نۀ شی اغستې وینځه په حُره باندې، وَهُوَ بِإِطْلَاقِهِ حُجَّةُ الشَّافِعِيِّ رحمه الله اودا د خپل اطلاق په وجه حجت دې په شافعی رحمه الله باندې فِي تَجْوِيزِهِ ذَٰلِكَ لِلْعَبْدِ دَ غلام دَ پاره دَ دې په جائز کاوه کې، وَعَلَى مَالِكٍ رحمه الله فِي تَجْوِيزِهِ ذَٰلِكَ بِرِضَا الْحُرَّةِ او په مالك حجت دې په جائز کاوه دَ ده کې په رضا د حرې سره

**حل اللغة:** ① تجویز: جائز کول

**تشریح:**- که د ړومبې نه آزاده ښځه په نکاح کې موجود ده.نود وینځې سره نکاح ناجائزده.د احنافو رحمهم الله هم دا مذهب دې.امام شافعی رحمه الله فرمائی .چه دآزاد سړی لپاره اګرچه دا صورت صحیح نه دې.خود غلام لپاره جائز دی .چه د آزادې ښځې په موجودګۍ کې وینځې سره نکاح اوکړی .امام مالك رحمه الله فرمائی .که آزاده ښځه راضی وی .نو ددې په موجودګۍ کې وینځې سره نکاح کولې شی . او که راضی نه وی . نو نکاح د ،امه علی الحرة، جائز نه ده.د امام مالك رحمه الله دلیل دادې.چه نکاح د ،امه علی الحرة، ممانعت د حرة د حق په وجه وو.خوچه کله حرة په خپله راضی شی .نودې پخپله خپل حق ساقط کړو.

ﷲ د امام شافعی رحمه الله دلیل دادې.چه نکاح د ،امه علی الحرة،ممانعت هغه وخت وی .چه خاوند آزاد وی . ځکه چې په دې صورت کې مانع د نکاح یعنی خپل جزء رقیق جوړول موجود دی .خوچه کله خاوند غلام دې.نودا مانع موجود نشو.ځکه چې غلام په جمیع اجزاء سره رقیق دې.نو په دې صورت کې نکاح د، امه علی الحره،جائز ګرځولې شی .(عینی شرح هدایه)

ﷲ د احنافو رحمهم الله دلیل د نبی کریم ﷺ قول دې.چه د آزادې ښځې په موجودګۍ کې وینځې سره نکاح مه کوئ.په دې حدیث کې عموم دې. خاوند که آزاد وی . او که غلام وی .راضی وی اوکه ناراضه.نودا حدیث د خپل اطلاق په وجه د امام شافعی اود امام مالك رحمه الله دواړو په خلاف حجت دې.

١) من حدیث عائشة رضی الله عنها أخرجه الدارقطنی فی سننه (٣٩/٤)_



وَلِأَنَّ لِلرِّقِّ أَثَرًا فِي تَنْصِيفِ النِّعْمَةِ عَلَى مَا نُقَرِّرُهُ فِي كِتَابِ الطَّلَاقِ إِنْ شَاءَ اللَّهُ او ځکه چې رقیت لره دخل دې به تنصیف دَ نعمت کې لکه چې مونږ به ثابت کړو په کتاب الطلاق کې انشاء الله تعالی فَيَثْبُتُ بِهِ حِلُّ الْمَحَلِّيَّةِ فِي حَالَةِ الِانْفِرَادِ دُونَ حَالَةِ الِانْضِمَامِ نو ثابتیږی په دې سره دَ محل حلیت په حالت دَ انفراد کې نه چې په حالت دَ انضمام کې

**حل اللغة:** ① تنصیف: نیمول ② الانفراد: ځانله والې ③ انضمام: یوځائې والې

**تشریح:**- دوهم دلیل عقلی دادې.چه د رقیت په وجه ځنګه سزاګانې نیمې وی .دغه ډول نعمتونه هم نیمګړی وی .مثلاً آزاد ته د زنا په حد کې چې څومره کوړې لګولې شی .رقیق ته به ددې نیمې لګولې شی .دغه حال د نعمتونو هم دې.

ﷲ دلته کې دوې [دوه] حالتونه دی .یو حالت انفراد،او دوهم حالت انضمام.د حالت انفراد مطلب دادې.چه صرف وینځې سره نکاح اوکړی .اود حالت انضمام مطلب دادې.چه وینځه او آزاد دواړه جمع کړی .او آزاده ښځه په دواړه حالتونوکې حلال ده.یعنی صرف آزادې سره نکاح اوکړی .یاد وینځې په موجودګۍ کې آزادې ښځې سره نکاح اوکړی .په دواړه صورتونوکې جائز دی .نو ددې تنصیف به کیږی .او وینځه به صرف په حالت انفراد کې حلاله ګرځولې شی .په حالت انضمام کې به حلال نشی ګرځولې.یعنی صرف وینځې سره نکاح کولې شی .خود آزادې ښځې په موجودګۍ کې د وینځې سره نکاح نشی کولې.خوکه څوك اعتراض اوکړی .چه وینځه دې په حالت انضمام کې حلال اوګرځولې شی .په حالت انفراد کې نه.نو بیاهم تنصیف کیږی ؟

ځواب: په دې صورت کې د شریف اهانت لازمیږی .د خسیسه اهانت نه لازمیږی .په دې وجه دا صورت اختیار نکړې شو.والله اعلم

## د وینځې په موجودګۍ کې آزادې ښځې سره د نکاح حکم

وَيَجُوزُ تَزَوُّجُ الْحُرَّةِ عَلَيْهَا او جائز دې په وینځه دَ حُرې نکاح ، لِقَوْلِهِ عليه الصلاة والسلام وَتُنْكَحُ الْحُرَّةُ عَلَى الْأَمَةِ(١) ځکه چې اشاد نبوی دې چې نکاح کولای شی دَ حرې سره په وینځه باندې

**تشریح:**- دا مسئله د مخکنی صورت عکس دې.یعنی که د مخکې نه وینځه په نکاح کې موجود ده.نو آزادې ښځې سره نکاح کول جائز دی .په دې کې هیڅ قباحت نشته.او آئمه اربعه په دې باندې متفق دی .چه د ... نکاح به هم باطل نه وی .خو په شوافعو رحمهم الله کې امام مزنی رحمه الله فرمائی .چه آزادې ښځې سره په نکاح کاوه سره د وینځې نکاح باطله وی . په حره باندې د قدرت په وجه،ځکه چې د وینځې سره د نکاح جواز د ،عدم قدرت علی الحرة، په وجه وو.نودا به د ،آب آمد تیمم برخاست،د قبیلې ځنې وی .

ﷲ زمونږ دلیل دنبی کریم ﷺ ارشاد دې.چه،آزاده ښځه په نکاح کې راوستلې شی .د وینځې په موجودګۍ کې،

وَلِأَنَّهَا مِنَ الْمُحَلَّلَاتِ فِي جَمِيعِ الْحَالَاتِ إِذْ لَا مُنَصِّفَ فِي حَقِّهَا او ځکه چې حره دَ محللا تو نه ده په ټولو حالا تو کې ځکه چې څۀ مُنصف نشته دَ دې په حق کې

**حل اللغة:** ① محللات: جمع د محلل،حلاله ② منصف: نیمونکې]

**تشریح:**- دوهم عقلی دلیل دادې.چه حره د محللات ځنې ده.په ټولو حالتونوکې ،د انفراد په حالت کې هم،اود انضمام په حالت کې هم.ځکه چې د حره په حق کې څۀ داسې شی موجود نشو.چه دا حل محلیت (محل لره حلالول) نیم کړی .په خلاف د وینځې،چه ددې په حق کې منصف یعنی رقیت موجود دې.

## د آزادې ښځې د طلاق بائن په عدت کې وینځې سره نکاح

١) تقدم تخریجه فی الحدیث السابق آنفاً)_

فَإِنْ تَزَوَّجَ أَمَةً عَلَى حُرَّةٍ فِي عِدَّةٍ مِنْ طَلَاقٍ بَائِنٍ أَوْ ثَلَاثٍ لَمْ يَجُزْ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله (١) نو كه نكاح ئې او كړو د وينځې سره په حره باند د طلاق بائنو او د دريو په عدت كې نو جائز نه دې په نزد د امام ابوحنيفه رحمه الله

**تشريح:**- صورت د مسئلې دادې.چه آزادې ښځې له ئې طلاق بائن وركړو.اوس ددې،حره مطلقه بائنه،د عدت په موده كې د وينځې سره نكاح كولې شي .او كه نشي كولې؟ نو په دې اړه كې امام ابوحنيفه رحمه الله دعدم جواز،

وَيَجُوزُ عِنْدَهُمَا لِأَنَّ هَذَا لَيْسَ بِتَزَوُّجٍ عَلَيْهَا وَهُوَ الْمُحَرَّمُ او صاحبين رحمهما الله فرمائي جائز دې،ځكه چې دا په حره باند نكاح نۀ دې وَلِهَذَا لَوْ حَلَفَ لَا يَتَزَوَّجُ عَلَيْهَا لَمْ يَحْنَثْ بِهَذَا او دا حرام دې،دا وجه ده كه چا قسم او خوړ چې نكاح به اونۀ كړم په دې باند نو په دې به حانث نۀ وي

**تشريح:**- صاحبين رحمهما الله د عدم جواز قائل دی .د صاحبينو رحمهما الله دليل دادې.چه حره ته په طلاق بائن وركولوسره د نكاح ملك زائل شو.نوكه اوس د وينځې سره نكاح كوی .نودا به ،تزوج امة على الحرة، نه وی .او حرام هم داوو.په دې وجه موږ دا نكاح جائز اوګرخوله.د دوهم دليل حاصل دادې.چه كه يوكس قسم اوخوړلو.چه زه به په حره باندې د وينځې سره نكاح نه كوم.بيا ئې حره ته طلاق بائن وركړو.او وينځې سره ئې نكاح اوكړه.نو حانث به نه وی .ددې نه معلوميږی .چه دا ،تزويج امة على الحرة، نه دې.ګنی حانث به وو.

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ أَنَّ نِكَاحَ الْحُرَّةِ بَاقٍ مِنْ وَجْهٍ لِبَقَاءِ بَعْضِ الْأَحْكَامِ فَيَبْقَى الْمَنْعُ احْتِيَاطًا قَسِيمُهَا او د ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې، چې نكاح د حرې پاته دې من وجه د نكاح د بعضو احكامو د پاته پاتې كيدو په وجه نو منع پاته پاتې شوه احتياطا. بِخِلَافِ الْيَمِينِ لِأَنَّ الْمَقْصُودَ أَنْ لَا يُدْخِلَ غَيْرَهَا فِي قَسْمِهَا په خلاف د يمين نه،چه په دې كې مقصود دا دې چې غيرې لره به د دې په نوبت كې داخله نه كړي

**تشريح:**- د امام صاحب رحمه الله د دليل حاصل دادې.چه د حره بائنه په عدت كې ددې ،من وجه،نكاح پاته ده.ځكه چې بعض احكام د نكاح،لكه نفقه، سكنى وغيره پاته دی .نو احتياطاً به د وينځې سره نكاح منع كولې شي .د صاحبينو رحمهما الله د دليل خواب دادې.چه په يمين كې عرف معتبر دې.اوپه عرف كې د بينونت (ښځې ته طلاق بائن وركولو) نه روسته تزويج على الحرة نشي وئيلې كيدلې.او په شريعت كې معنى معتبره وی .اود حرمت معنى د عدت د بقاء په وجه پاته ده.نود عرف په اعتبار سره به حانث نه وی .خو په شريعت كې به د حرمت معنى په اعتبار سره د آزاد مطلقه بائنه په عدت كې د وينځې سره نكاح حرام وی .

علامه مرغينانى رحمه الله فرمائی .چه د يمين نه مقصود دادې.چه ستا په وار كې به بله يوه ښځه نه شريكوم.نو هركله ئې چې دې ته طلاق بائن وركړو.نو ددې وار پاته پاتې نشو.نو اوس د بائنه په عدت كې كه د دويمې ښځې سره نكاح اوكړی .نودا به ددې په نمبيركې به شريكيدل نه وی .نو حانث به هم نه وی .

**تعدد ازواج**

وَلِلْحُرِّ أَنْ يَتَزَوَّجَ أَرْبَعًا مِنَ الْحَرَائِرِ وَالْإِمَاءِ آزاد سړی په آزادو ښځو او وينځو كې د څلورو سره نكاح كولې شي. وَلَيْسَ لَهُ أَنْ يَتَزَوَّجَ أَكْثَرَ مِنْ ذَلِكَ د دې نه د زياتو سره نۀ شي كولې. لِقَوْلِهِ تَعَالَى. {فَانْكِحُوا مَا طَابَ لَكُمْ مِنَ النِّسَاءِ مَثْنَى وَثُلَاثَ وَرُبَاعَ} ځكه چې د الله تعالى ارشاد دې،چه نكاح كوی كومې ښځې چې ستاسو خوښې شي دوې [دوه] دوې [دوه] درې درې څلور څلور. وَالتَّنْصِيصُ عَلَى الْعَدَدِ يَمْنَعُ الزِّيَادَةَ عَلَيْهِ او د عدد وضاحت زياتوالى لره منع كوی په دې باندې

(١) القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في الخانية (١\١٦٩) والدرالمختار (٢\٣١٦) والبحر الرائق (٣\١٨٥) والهندية (١\٢٧٩) نقلاً عن القول الراجح (١\٢٤٥)-



**حل اللغة:** ① الحرائر: جمع د حرة: آزاده ښځه

**تشريح:**- په دې عبارت كې مصنف رحمه الله د ازواج د تعداد په اړه كې چې كوم اختلاف وو.هغه ئې په دلائلوسره بيان كړې دې.د احنافو رحمهم الله په نيز آزاد سړې په يووخت كې څلورو ښځو سره نكاح كولې شی . كه څلور واړه آزادې وی .او كه څلور واړه وينځې وی .او كه بعض آزادې وی .او بعض وينځې وی .

علامه مرغينانى رحمه الله اول د هغه حضراتو دليل بيان كړو.څوك چې د څلورو اجازت وركوی .په دليل كې ئې آيت پيش كړې دې.دا آيت.د تعداد(شمير) په بيان كې نص دې.اود تعداد صراحت زياتوالی لپاره مانع وی .نود څلورو نه زياتې ښځې به د يو آزاد سړی لپاره حلال نه وی .ددې حضراتو په نيز رحمهم الله آيت كې لفظ د ،واؤ، د ،او، په معنى كې دې.چهد تخيير لپاره دې.اوس به مطلب داوی .چه په دې تعداد كې هر يو عدد اختيار كړه.دوې [دوه] يا درې يا څلور، واړه ټيك دی .روافضو ،واؤ، دجمع لپاره اوګڼرلو.درې واړه عددونه ئې جمع كړل،اود نهو اجازت ئې وركړو.خوارجو اووئيل.چه په ،مثنى و ثلاث ورباع، كې د تكرار ده.چه د مثنى معنى ده.دوې [دوه] دوه.د ثلاث معنى ده درې درې.د رباع معنى ده څلورڅلور.داواړه چې جمع كړې شي .نو اتلس جوړيږی .نو دوی اتلسو ښځو سره دنكاح اجازت وركړو.روستنى دواړه اقوال لغو دی .دې اړخ ته به توجه نشي كولې.د حق مذهب تائيد ددې حديث نه هم كيږی .كوم چې ترمذى نقل كړې دې.حديث دادې.چه غيلان بن سلمه رضي الله عنه اسلام راوړلو.نو ده سره لس ښځې وې.نو نبى كريم ﷺ حكم وركړو.چه په دوی كې څلور خوښې كړه.او پاته پريږده.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللَّهُ: لَا يَتَزَوَّجُ إِلَّا أَمَةً وَاحِدَةً لِأَنَّهُ ضَرُورِيٌّ عِنْدَهُ او امام شافعى رحمه الله فرمائی چې نكاح به نۀ كوی مګر د يوې وينځې سره ځكه چې نكاح د وينځې د دۀ په نزد ضرورة دې

**تشريح:**- د امام شافعى رحمه الله په دې جزء كې اختلاف دې.كه د وينځې سره نكاح كوی .نو صرف د يوې وينځې سره كولې شي .زياتی سره نشی كولې.روافض د نهو پورې اجازت وركوی .او خوارج د اتلسو پورې. دليل دادې.چه د وينځې سره نكاح ضرورة ثابت ده.نود اړتيا په اندازه به نكاح جائز وی .او اړتيا يوې وينځې سره پوره كيږی .نود يوې ځخه به د زياتو وينځو سره نكاح جائز نه وی .لكه څنګه چې په اړتيا كې مردار حلال كړې شوې دې.نو مردار به هم په دومره اندازه حلال وی .چه په هغې سره ژوندې پاتې شي .نس ډكول، ياد لذت(او خوند) اخستلو په خيال خوړل حرام دې.

وَالْحُجَّةُ عَلَيْهِ مَا تَلَوْنَا إِذِ الْأَمَةُ الْمَنْكُوحَةُ يَنْتَظِمُهَا اسْمُ النِّسَاءِ كَمَا فِي الظِّهَارِ او حجت په دۀ هغه دې كوم چې موږ تلاوت كړو، ځكه چې لفظ د نساء آمې منكوحې لره هم ګډ دې لكه په ظهار كې چې دی

**حل اللغة:** ① حجة: دليل ② ينتظم: شامليږی

**تشريح:**- موږ چې كوم آيت پيش كړې دې.هغه به د امام شافعى رحمه الله په خلاف حجت وی .ځكه چې په آيت كې د ،نساء ، لفظ مذكور دې.او لفظ د ،نساء، چې څنګه آزاد ته ګډ دې.دغه ډول امه منكوحه ته هم ګډ دې.لكه څنګه چې د ظهار د كفاره په موقع باندې فرمائی ((وَالَّذِينَ يُظَاهِرُونَ مِنْ نِسَائِهِمْ)). دلته كې د ،نساء، نه مراد آزاد او وينځې دواړه مراد دی .نوكه د آزادې ښځې سره ئې ظهار اوكړه.بيا به هم كفاره د ظهار واجب وی .او كه د امه منكوحه سره ئې ظهار اوكړو.بيا به هم كفاره د ظهار لازم وی .والله اعلم بالصواب

**د غلام لپاره تعدد ازواج**

وَلَا يَجُوزُ لِلْعَبْدِ أَنْ يَتَزَوَّجَ أَكْثَرَ مِنِ اثْنَتَيْنِ او جائز نه دی غلام لره د دوؤ نه د زياتو سره نكاح كول وَقَالَ مَالِكٌ يَجُوزُ لِأَنَّهُ فِي حَقِّ النِّكَاحِ بِمَنْزِلَةِ الْحُرِّ عِنْدَهُ امام مالك فرمائی چې جائز دې ځكه چې د نكاح په حق كې غلام په منزله د حر دې د دۀ په نزد حَتَّى مَلَكَهُ بِغَيْرِ إِذْنِ الْمَوْلَى تر دې چې دغه د نكاح مالك دې پغير د اجازت د مولى نه،

تشریح:- په دې عبارت کې د غلام لپاره د ازواجو د تعداد حکم بیان شوې دې.د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز دوې [دوه] ښځو سره نکاح جائز ده.زیاتو سره اجازت نشته.امام مالك رحمه الله د آزاد پشان غلام لپاره هم د څلور اجازت ورکوی.

د امام مالك رحمه الله دلیل دادې.چه د نکاح په معاملاتو کې غلام د آزاد پشان دې.ځکه چې ملك نکاح د آدمیت (انسانیت) د خواصو ځنې دې.او په آدمیت د رقیت هیڅ دخل نشته.سړی سړی واړه برابر دی.که آزاد وی .او که غلام وی .هم دغه وجه ده.چه غلام ته بغیر د مولا د اجازت نه د نکاح اختیار دې

ولنا أن الرق منصف فيتزوج العبد اثنتين والحر أربعا إظهارا لشرف الحرية زمونږ دلیل دا دې چې رقیت تنصیف کوونکې دې نو غلام د دوؤ سره نکاح کوی او حُر د څلورو سره د شرف د حریت د اظهار د پاره، فإن طلق الحر إحدى الأربع طلاقا بائنا لم يجز له أن يتزوج رابعة نو که طلاقه کړه حُر یوه په څلورو کې په طلاق بائن سره جائز نه دی ورته نکاح کول د څلورمې سره حتى تنقضي عدتها وفيه خلاف الشافعي تر دې چې د هغې عدت تیر شی ،په دې کې د امام شافعی رحمه الله اختلاف دې، وهو نظير نكاح الأخت في عدة الأخت او دا نظیر دې د نکاح د خور په عدت د خور کې

تشریح:- زمونږ دلیل دادې.چه په دې خبره د ټولو اتفاق دې.چه رقیت په نعمتونوکې تنصیف کوی .اود ښځو حلال کیدل هم د الله د اړخه نعمت دې.نو په دې نعمت کې به هم تنصیف وی .نو هرکله چې د آزاد لپاره په یو وخت کې څلور ښځې حلالې دی .نو ددې نصف،یعنی دوې [دوه] ښځې به غلام لپاره حلال وی .اوکه غور اوکړې شی .نو واقعی په شریعت کې نعمتونه ،متفاوت الاحوال، دی . لکه د نبوت منصب د واړه نه اشرف وو. نود نبی کریم ﷺ لپاره نهه بیبیانې حلال کړې شوې.اود آزاد حال د غلام نه اشرف دې.نود آزاد لپاره څلور ،اود غلام لپاره دوې [دوه] حلال کړې شوې.چه د حریت شرف ښکاره کړې شی .د احنافو رحمهم الله د مذهب تائید د عمر رضی الله عنه د حدیث نه هم کیږی .[قال لا يتزوج العبد اكثر من اثنتين] او عطاء د صحابه کرامو رضی الله عنهم اجماع نقل کړې ده.چه غلام د دوې [دوه] ښځو نه زیاتې نشی کولې.(عینی شرح هدایه)خو که تاسو اشکال اوکړئ چه ((فانكحوا ما طاب لكم من النساء)) آیت مطلق دې.آزاد اوغلام ټولو ته ګډ دې.نو موږ ځواب درکوو.چه په اجماع سره آیت مقید کړې شو.نو آیت به صرف آزاد ته ګډ وی .غلام ته به ګډ نه وی .

ددې نه روسته مصنف دا مسئله بیان کړې ده.چه آزاد سړی که خپلو څلور بیبیانوکې کومې یوې ته طلاق بائن ورکړو.نو ترکومه پورې چې دا مطلقه بائنه خپل عدت پوره نکړی .د هغه وخته پورې به دا سړی څلورمې ښځې سره واده نه کوی .ګنې دده په نکاح کې پنځمه ښځه جمع شی .امام شافعی رحمه الله فرمائی .چه څلورمې سره نکاح کولې شی .ځکه چې د طلاق بائن په وجه دا بالکل د زوجیت نه اووتله.نود پنځو ښځو جمع کیدل نه لازمیږی .اودا د ،نکاح الاخت فی عدت الاخت، مثال دې.چه ددې تفصیل په ماقبل کې تیر شوې دې.

## د زنا حاملې ښځې سره د نکاح حکم

قال فإن تزوج حبلى من زنا جاز النكاح که نکاح ئې او کړو د زنا نه د حامله شوې ښځې سره نو جائز دې نکاح، ولا يطؤها حتى تضع حملها وهذا عند أبي حنيفة ومحمد(1) او وطی به ورسره نه کوی ترحمل پیدا کیدو پورې،دا د امام ابوحنیفه رحمه الله او امام محمد رحمه الله په نزد ده، وقال أبو يوسف رحمه الله: النكاح فاسد او ابویوسف رحمه الله

(1) القول الراجح هو قول الطرفين رحمهما الله كذا في ردالمحتار(۳۱۶/۲) ومجمع الأنهر(۳۲۹/۱) نقلاً عن القول الراجح (۲۴۶/۱)



فرمائی چې نکاح به فاسد وی ، وإن كان الحمل ثابت النسب فالنكاح باطل بالإجماع او که حمل ثابت النسب وه نو نکاح په اجماع سره باطل دې

حل اللغة: ① الحمل: امید ،هغه بچې چې د مور په رحم کې وی

تشریح:- په زنا سره که ښځه حامله شوې وی .نودې سره د نکاح په جواز او عدم جواز کې اختلاف دی.د طرفینو رحمهما الله په نیز جائز ده.خو د وضع حمل پورې وطی کول درست نه دی . د امام ابویوسف رحمه الله په نیز د سره نکاح درست نه ده.او امام شافعی رحمه الله د نکاح اود وطی د دواړو د جواز قائل دې.اوکه حمل ،ثابت النسب، وی .مثلاً حامله، معتدة الغير،ده.نو په دې صورت کې نکاح په اتفاق سره باطل ده.اوکه یو کس د یوې ښځې سره زنا اوکړه.اودا ښځه په دې سره حامله شوه.بیا هم دې زانی ددې سره نکاح اوکړه.نو نکاح هم جائز ده.او وطی هم بالاتفاق حلال ده

لأبي يوسف رحمه الله أن الامتناع في الأصل لحرمة الحمل وهذا الحمل محترم د ابویوسف رحمه الله دلیل دا دې چې منع د نکاح نه په اصل (مقیس علیه)کې د احترام د حمل په وجه ده،او دا حمل محترم دې لأنه لا جناية منه، ولهذا لم يجز إسقاطه ځکه چې د دهٔ څهٔ قصور نشته په دې وجه د دهٔ ساقطول جائز نه دی ،

حل اللغة: ① الامتناع:منع کول ② جناية: ګنا

تشریح:- .د امام ابویوسف رحمه الله دلیل دادې.چه حمل که ،ثابت النسب، وی .نود نکاح عدم جواز د حمل د احترام په وجه دې.او، حمل من الزنا ، هم محترم دې.ځکه چې د حمل د اړخه هیڅ جنایت نشته.جنایت چې څه هم دې.د زانی او مزنیه د اړخه دې.هم دغه وجه ده.چه حمل ساقطول ناجائز دی .البته زمونږ په زمانه کې ساقطول جائز دی .(حاشیه هدایه)نو هرکله چې په اصل، یعنی په مقیس علیه کې چې د نکاح دعدم جوازکوم علت دې.هم دغه علت په فرع یعنی په مقیس کې هم موجود دې.نو بیا به په مقیس کې هم د مقیس علیه حکم لګولې شی .یعنی د نکاح د عدم جواز علت مشترکه د حمل احترام دې.

ولهما أنها من المحللات بالنص وحرمة الوطء كي لا يسقي ماءه زرع غيره د طرفینو رحمهما الله دلیل دا دې چې حامله د زنا ښځه د محللاتو نه ده د نص په ذریعه او حرمت د وطی ځکه دې چې د دهٔ اوبه د غیر فصل اوبه نه کړی

تشریح:-د طرفینو رحمهما الله دلیل دادې.چه ،حامله من الزنا، د محللاتو ځنې ده.اود نص یعنی [وأحل لكم ما وراء ذلكم] نه ثابت ده.ځکه چې ،حامله من الزنا،ذکر د محرماتو په بیان کې اونکړې شو.اوکوم چې د محللاتو ځنې وی .هغې سره نکاح جائز ده.نود ،حامله من الزنا،سره به هم نکاح جائز وی .خوکه تاسو ته دا اشکال پیدا شی .چه د ،حامله ثابت النسب، ذکر هم په محرماتوکې نشته.نو څه وجه ده.چه داد [وأحل لكم ما وراء ذلكم] په حکم کې داخل نکړې شوه.او،حامله ثابت النسب، سره نکاح جائز اونه ګرځولې شوه.

ځواب: ،حامله ثابت النسب،د الله تعالی په قول [ولا تعزموا عقدة النكاح حتى يبلغ الكتاب أجله] کې داخل ده.،یعنی اراده مه کوئ د نکاح،تردې چې خپل مقررعدت آخره پورې اورسی ، مطلب دادې.که یوه ښځه د خاوند نه جلا شی .نو ترکومه پورې چې په عدت کې وی .د هیڅ چا لپاره جائز نه ده.چه ددې سره نکاح اوکړی .او دا ښکاره ده.چه د حامله عدت وضع د حمل ده.نود وضع حمل نه مخکې به نکاح نه کوی .(عینی شرح هدایه)خو سوال دادې.چه ،حامله من الزنا، چې هرکله د محللاتو ځنې ده.نو بیا د نکاح واقع کیدلو نه روسته وطی ولې حرام کړې شوه؟

ځواب: وطی په دې وجه حرام کړې شوه.چه په خپلو اوبوسره د بل کښت اوبه کول، لازم نشی .ځکه چې دا حرام دی .د نبی کریم ﷺ ارشاد دې.[من كان يؤمن بالله واليوم الآخر فلا يسقى ماءه زرع غيره] یعنی کوم کس چې په الله اود آخرت په ورځ باندې ایمان لری .په خپلو اوبو سره دې د بل کښت نه اوبه کوی .مراد دادې.چه د حاملو سره دې وطی نه کوی .

وَالِامْتِنَاعُ فِي ثَابِتِ النَّسَبِ لِحَقِّ صَاحِبِ الْمَاءِ وَلَا حُرْمَةَ لِلزَّانِي او په ثابت النسب کي دَ نکاح نه منع کيدل دَ صاحب دَ اوبو دَ حق په وجه دی او دَ زاني څه احترام نشته

تشريح:- د امام ابويوسف رحمه الله د دليل ځواب دادې چه مونږه دا منو چه د نکاح فساد دحمل د احترام په وجه دې بلکه دا(فساد) د صاحب ماء د حق په وجه دې او د زاني د حرام فعل کاوه په وجه، هيڅ احترام نشته. والله اعلم بالصواب

## د دارحرب ګرفتاري حاملي ښځي سره د نکاح حکم

فَإِنْ تَزَوَّجَ حَامِلًا مِنَ السَّبْيِ فَالنِّكَاحُ فَاسِدٌ لِأَنَّهُ ثَابِتُ النَّسَبِ که چا په نکاح کړه داسي حامله کومه چي دَ دار حرب نه ګرفتاره شوې ده نو نکاح يې فاسد دې ځکه چي دَ غه حمل ثابت النسب دې. وَإِنْ زَوَّجَ أُمَّ وَلَدِهِ وَهِيَ حَامِلٌ مِنْهُ فَالنِّكَاحُ بَاطِلٌ او که چا دَ خپلي ام ولدې نکاح دَ بل چا سره اوکړه او هغه دَ دهٔ (خپل آقا) نه حامله وه نو نکاح يې باطل دې. لِأَنَّهَا فِرَاشٌ لِمَوْلَاهَا حَتَّى يَثْبُتَ نَسَبُ وَلَدِهَا مِنْهُ مِنْ غَيْرِ دَعْوَةٍ ځکه چي دَ غه دَ خپل آقا فراش دې تر دې چي دَ دغې بچی نسب به ثابت شی دَ آقا نه دَ دعوی دَ نسب نه بغير فَلَوْ صَحَّ النِّكَاحُ لَحَصَلَ الْجَمْعُ بَيْنَ الْفِرَاشَيْنِ اوس که نکاح صحيح شی نو جمع بين الفراشين به حاصل شی.

حل اللغة: ① حامل: اميدواره زنانه

تشريح:- مسئله داده. که يوکس داسي ښځي سره نکاح اوکړه. کومه چي په دارحرب کي نيولې شوی وی. او راوستلې شوی وی. او هغه حامله وی. نو نکاح به فاسد وی. د آئمه اربعه رحمهم الله په دې باندې اتفاق دې. دليل دادې چه ددې دحربی خاوند نه ددې دحمل نسب ثابت دې. او د، ثابت النسب، سره نکاح فاسد وی.

دويمه مسئله داده. چه ديوکس ام ولد ده په اوبو حامله ده. بيا مولا ددې ام ولد د بل کس سره نکاح اوکړه. نودا نکاح باطل ده. ځکه چي دا ام ولد د خپل مولا فراش دې. ځکه چي ددې ولد نسب د مولا نه بغير د نسب د دعوې نه ثابتيږی. اوس که د ام ولد نکاح درست اوګرځولې شی. نو، جمع بين الفراشين، به لازم شی. ځکه چي د ام ولد کيدلو په وجه د مولا فراش دې. او د نکاح په وجه به د خاوند فراش شی. او، جمع بين الفراشين، باطل ده. ځکه چي د، جمع بين الفراشين، په صورت کي به نسب مشتبه شی.

إِلَّا أَنَّهُ غَيْرُ مُتَأَكِّدٍ حَتَّى يَنْتَفِيَ الْوَلَدُ بِالنَّفْيِ مِنْ غَيْرِ لِعَانٍ مګر دا چي دَ غه غير قوی ده تر دې چي بچي به منتفی شی په نفی کاوه سره بغير دَ لعان نه فَلَا يُعْتَبَرُ مَا لَمْ يَتَّصِلْ بِهِ الْحَمْلُ نو دا به معتبره نه وی ترڅوچه دَ دې سره حمل متصل نهٔ وی.

تشريح:- دا عبارت د يو اعتراض ځواب دې. اعتراض دادې چه هرکله ام ولد د مولا فراش دې. نود غيرحامله کيدلو په صورت کي هم نکاح باطل کيدل پکار دی. ځکه چي اوس هم، جمع بين الفراشين، لازميږی. ځواب دادې چه ام ولد(د موسی) فراش ضرور دې. خو قوی نه دې. ضعيف دې. هم دا وجه ده. چه د ام ولد بچې بغير د لعان نه په نفی کاوه سره منتفی کيږی. په خلاف د حره منکوحې. چه ددې د بچی نفی که اوکړې شوه. نو لعان به واجب وی. نود ام ولد فراش کيدل به هغه وخت معتبر وی. کله چي دې سره حمل متصل وی. او که حمل متصل نه وی. نو فراش کيدل به هم معتبر نه وی.

## د موطوءه وينځي د بل سره د نکاح حکم

قَالَ وَمَنْ وَطِئَ جَارِيَتَهُ ثُمَّ زَوَّجَهَا جَازَ النِّكَاحُ لِأَنَّهَا لَيْسَتْ بِفِرَاشٍ لِمَوْلَاهَا يو سړی خپله وينځه وطی کړه بيا يې دَ بل چا سره دَ دې نکاح او کړو نو جائز دې، ځکه چي دا نهٔ ده فراش دَ خپل آقا، فَإِنَّهَا لَوْ جَاءَتْ بِوَلَدٍ لَا يَثْبُتُ نَسَبُهُ مِنْ غَيْرِ دَعْوَةٍ ځکه چي که دې بچي راوړو نو دَ هغهٔ نسب به ثابت نهٔ وی دَ دعوی دَ نسب نه بغير، إِلَّا أَنَّ عَلَيْهِ أَنْ يَسْتَبْرِئَهَا صِيَانَةً لِمَائِهِ مګر دا چي په آقا استبراء (مستحبه) ده دَ خپلو اوبو دَ محفوظ کاوه دَ پاره.



حل اللغة: ① جارية: وينځه ② استبراء: خالی د رحم د بچی نه ③ صيانة: حفاظت]

تشريح:- يوسړی د خپلې وينځې سره وطی اوکړه. بيا ئې د بل چاسره ددې نکاح اوکړه. نود رحم د استبراء نه وړاندې ددې نکاح جائز ده.

د جواز نکاح د دليل نه مخکښي داخبره په ذهن کي کينوئ. چه ام ولد وائی. مولا خپلې وينځې سره وطی اوکړه. بيا بچې پيدا شو. مولا د نسب دعوی اوکړه. نودا وينځه به ام ولد شمارلې شی. په دوهم ځلی د ماشوم په پيدا کيدلو باندې به د نسب دعوه نه بغير نسب ثابت وی.

دويمه خبره داچه فراش وائی. چه ښځه د خپل بچی د نسب په ثابتولوکي د نسب دعوه ته محتاجه نه وی. اوس د جواز نکاح د دليل حاصل دادې. چه دا وينځه د خپل مولا فراش نه دې. ځکه چي د نسب د دعوه نه بغير د مولا نه ددې بچی نسب نه ثابتيږی. هرکله چي دا ثابته شوه. چه دا وينځه د خپل مولا فراش نه دې. نو ددې نکاح به درست وی. ځکه چي د منع علت فراش کيدل وو. او هغه اونه موندې شو. خود نکاح نه استبراء کول په مولا باندې مستحب دی. چه پخپله د مولا اوبه محفوظ شی

وَإِذَا جَازَ النِّكَاحُ او هر کله چي نکاح جائز شو فَلِلزَّوْجِ أَنْ يَطَأَهَا قَبْلَ الِاسْتِبْرَاءِ الله نو خاوند لره جائز دی چي وطی يې کړي مخکښي دَ استبراء نه، عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُمَا اللهُ دَ امام ابوحنيفه رحمه الله او امام يوسف په نزد

تشريح:- هرکله چي نکاح درست شوه. نود خاوند لپاره د استبراء نه وړاندې وطی کول درست دی. او که درست نه دی؟ په دې اړه کي اختلاف دې. د شيخينو رحمهما الله په نيز درست ده.

وَقَالَ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللهُ لَا أُحِبُّ لَهُ أَنْ يَطَأَهَا حَتَّى يَسْتَبْرِئَهَا (١) او امام محمد رحمه الله فرمائی چي زهٔ نهٔ خوښووم دهٔ لره چي وطی يې کړي مخکښي دَ استبراء نه، لِأَنَّهُ احْتَمَلَ الشُّغْلَ بِمَاءِ الْمَوْلَى فَوَجَبَ التَّنَزُّهُ كَمَا فِي الشِّرَاءِ ځکه چي دَ آقا په اوبو سره د مشغوليد و احتمال دې نو واجب شو لرې اوسيدل، لکه په شراء کي.

تشريح:- امام محمد رحمه الله فرمائی. چه زما په نيز خوښ عمل نه دې. د امام محمد رحمه الله دليل دادې. چه د مولا په اوبوسره د وينځې د رحم مشغوليدلو احتمال دې. نودا پاکول پکاردی. لکه که يوکس وينځه واخستله. نو مشتری به د استبراء نه وړاندې وطی نه کوی. بلکه استبراء واجب ده.

وَلَهُمَا أَنَّ الْحُكْمَ بِجَوَازِ النِّكَاحِ أَمَارَةُ الْفَرَاغِ دَ شيخينو دليل دا دې چه دَ جواز دَ نکاح حکم دَ فراغت دَ رحم علامت دې، فَلَا يُؤْمَرُ بِالِاسْتِبْرَاءِ لَا اسْتِحْبَابًا وَلَا وُجُوبًا په دې وجه دَ استبراء حکم نهٔ شی کولې نه استحبابا او نهٔ وجوبا بِخِلَافِ الشِّرَاءِ لِأَنَّهُ يَجُوزُ مَعَ الشُّغْلِ په خلاف دَ شراء نه، چه دغه دَ مشغوليت دَ رحم سره هم جائز دی

تشريح:- د شيخينو رحمهما الله د دليل حاصل دادې. چه د شريعت د جواز نکاح حکم لګول، د رحم د فراغت علامت دې. ځکه چي نکاح هغه وخت مشروع کړې شوه. چه رحم د شاغل محرم نه فارغ وی. او هرکله چي رحم فارغ دې. نود استبراء حکم به نشی لګولې. نه استحبابی او نه وجوبی. د امام محمد رحمه الله د قياس ځواب دادې. چه شراء او شغل د رحم سره هم جائز دې. نود وينځې اخستل به د رحم فارغيدلو علامت نه وی. او چونکه د بوخت رحم سره نکاح جائز نه ده. په دې وجه به د جواز نکاح حکم د رحم د فارغيدلو علامت وی. والله اعلم بالصواب

## زناکارې ښځې سره د نکاح حکم

---

(١) القول الراجح هو قول محمد رحمه الله كذا فى العناية (١٤٨\٣) ورد المحتار (٣١٧\٢) والبحرالرائق (١٨٨\٣) والهندية (٢٨٠\١) نقلاً عن القول الراجح (٢٤٧\١)-

وَكَذَا اِذَا رَأَى اِمْرَأَةً تَزْنِيْ فَتَزَوَّجَهَا حَلَّ لَهُ اَنْ يَطَأَهَا قَبْلَ اَنْ يَسْتَبْرِئَهَا عِنْدَهُمَا او دغه ډول ده كله چې اوليده يو سړى ښځې له چې زنا كوى ،بيا يې ورسره نكاح او كړو نو دَهٔ له ره يې وطى حلاله ده دَ استبراء نه مخكې ،دَ شيخينو په نزد.

**تشريح:-** يوه ښځه ئې په زنا كاوه اوليد له.بيا ئې هغې سره نكاح اوكړه.نود شيخينو ؒ په نيز د استبراء نه وړاندې وطى كول حلال دى .

وَقَالَ مُحَمَّدٌ: لَا اُحِبُّ لَهُ اَنْ يَطَأَهَا مَا لَمْ يَسْتَبْرِئْهَا وَالْمَعْنٰى مَا ذَكَرْنَا امام محمد ؒ فرمائى چې زهٔ دَ دهٔ دَ پاره وطى نه خوښووم تر څو چې استبراء او نهٔ كړى والمعنى ماذكرنا او دليل يې هغه دې كوم چې مونږ ذكر كړو.

**تشريح:-** او امام محمد ؒ فرمائى .چه بغير د استبراء نه وطى كول،زما په نيز ناخوښه دى .د فريقينو دلائل هم هغه دى .دكوم ذكر چې ددې نه په وړاندې مسئله كې اوشو.

## د نكاح متعه حرمت

قَالَ وَنِكَاحُ الْمُتْعَةِ بَاطِلٌ وَهُوَ اَنْ يَقُوْلَ لِاِمْرَأَةٍ اَتَمَتَّعُ بِكِ كَذَا مُدَّةً بِكَذَا مِنَ الْمَالِ او نكاح دَ متعې باطل ده. او متعه دا ده چې ښځې ته او فرمائى چې زهٔ ستا نه دومره موده په دومره مال سره نفع اخلم وَقَالَ مَالِكٌ: هُوَ جَائِزٌ لِاَنَّهُ كَانَ مُبَاحًا فَيَبْقٰى اِلٰى اَنْ يَظْهَرَ نَاسِخُهُ او مام مالك فرمائى چې متعه جائز ده ځكه چې دا مباح وَه نو پاته به وى تر دې چې ناسخ يې ظاهر شي .

**تشريح:-** متعه يوې ښځې ته [اتمتع بك كذا مدة بكذا من المال] ونيلو ته وائى .يعنى ،د مقرر مال په بدله كې د مقررې مودې پورې نفع اخستل،واړه آئمه د متعه د حرمت قائل دى .بغير د امام مالك ؒ نه.د علامه مرغينانى ؒ د بيان مطابق امام مالك ؒ فرمائى .چه د اسلام په ابتداء كې متعه مباح وه.نو ددې اباحت به د هغه وخته پورې پاته پاتې وى .چه تركومه پورې څه ناسخ رانشى .او ناسخ تراوسه پورې نه دې راغلې.نو مباح به پاتې وى .

قُلْنَا: ثَبَتَ النَّسْخُ بِاِجْمَاعِ الصَّحَابَةِ ؓ مونږ وايو چې نسخ ثابت شوې ده، په اجماع دَ صحابو سره وَابْنُ عَبَّاسٍ ؓ (۱) صَحَّ رُجُوْعُهُ اِلٰى قَوْلِهِمْ فَتَقَرَّرَ الْاِجْمَاعُ او دَ ابن عباس رجوع هم ثابته شوې ده دَ اصحابو قول اړخ ته نو دَ ټولو اجماع او شوه

**تشريح:-** صاحب دهدايه ؒ په ځواب كې اوفرمائيل.چه د متعه په حرمت باندې د صحابه كرامو ؓ اجماع ده.هغه به ناسخ وى .

خو په دې باندې دا اشكال كيږى .چه د متعه په حرمت باندې د صحابه كرامو ؓ اجماع نقل كول صحيح نه دى .ځكه چې د اجماع په زمانه كې ابن عباس ؓ د متعه د جواز قائل وو.

ددې ځواب به داوى .چه يوځلې حضرت على ؓ ابن عباس ؓ ته اووئيل.چه آيا تاته معلومه نه ده.چه نبى كريم ﷺ د خيبر په ورځ متعه حرام كړې وه.ابن عباس ؓ چې دا واوريدل،نو دخپل قول نه ئې رجوع اوكړه.اود متعه د جواز په حقله يې خپله رائې بدله كړه

فائده* متعه د خيبر نه مخكې حلال وه.خود خيبر په ورځ نبى كريم ﷺ د پاللې شوى خرو غوښه،او متعة النساء حرام كړله.بيا د فتح مكه په كال په يوم اوطاس كې د درې ورځو لپاره حلال كړې شوه.بيا په څلورمه ورځ د قيامته پورې حرام كړې شوه.په دې موقع باندې ددې وضاحت هم ضرورى دې.چه علامه مرغينانى ؒ د امام مالك ؒ مذهب په نقل كولو كې غلطى يا سهو كړې ده.ځكه چې د مالكيه په هيڅ يو كتاب كې

(۱) من حديث عبدالله بن زبير ؓ أخرجه مسلم فى النكاح رقم ۲۷)_



د متعه د جواز بيان نه دې كړې شوې.ددې نه علاوه امام مالك ؒ په خپله موطا كې د حضرت على ؓ حديث نقل كړې دې.[أن رسول الله ﷺ نهى عن متعة النساء وعن لحوم الحمر الأهلية من خيبر] (عينى شرح هدايه) اود حضرت امام مالك ؒ عادت دې.چه دوى په خپله موطاكې هغه حديث نقل كوى .كوم چې ددوى مذهب وى .نودې حديث له په موطا كې ځانې وركول، ددې خبرې دليل دې.چه امام مالك ؒ هم د متعه د حرمت قائل دې.

## په نكاح موقت او متعه كې فرق

وَالنِّكَاحُ الْمُؤَقَّتُ بَاطِلٌ مِثْلُ اَنْ يَتَزَوَّجَ امْرَأَةً بِشَهَادَةِ شَاهِدَيْنِ اِلٰى عَشَرَةِ اَيَّامٍ او نكاح موقت باطل دې،مثلاً نكاح او كړى د ښځې سره د دوو ګواهانو په ګواهى سره دَ لسو ورځو د پاره،

**تشريح:-** نكاح موقت دا ده.چه يوكس د دوې [دوه] ګواهانو په موجودګئ كې د يومعلوم مودې پورې نكاح اوكړى .مثلاً د لسو ورځو دپاره،يو كال لپاره وغيره وغيره.په نكاح موقت او نكاح متعه كې توپير په دوې [دوه] طريقو سره دې.اول داچه په نكاح موقت كې لفظ د تزوج ذكر وى .په متع كې ذكر نه وى . دوهم داچه په موقت كې دشاهدينو شهادت وى .په متعه كې نه وى .عام فقهاء د نكاح موقت دَ حرمت قائل دى .

وَقَالَ زُفَرُ هُوَ صَحِيْحٌ لَازِمٌ (۱) لِاَنَّ النِّكَاحَ لَا يَبْطُلُ بِالشُّرُوْطِ الْفَاسِدَةِ امام زفر ؒ فرمائى چې نكاح موقت صحيح دې لازم دې ځكه چې نكاح په فاسدو شرطو نو سره نهٔ فاسديږى ،

**تشريح:-** امام زفر ؒ دجواز قائل دې.د امام زفر ؒ دليل دادې.چه نكاح موقت نكاح ده.خو په دې كې صرف معلوم وخت شرط لګولې شوې دې.او قاعده ده.چه نكاح په فاسد شرطونو سره نه باطليږى .بلكه پخپله شرط فاسده باطل وى .مثلاً يوكس په دې شرط باندې نكاح اوكړه.چه يوه مياشت روسته به طلاق نه دركوم.نودا شرط باطل دې.او نكاح درست ده.او يوه مياشت روسته به خاوند ته د طلاق حق حاصل وى .خود امام زفر ؒ د دليل په ځواب كې مونږ وايو.چه معلوم وخت شرط نه وى .بلكه ايجاب اوقبول دغه وخته پورې وى .او داسې ايجاب اوقبول صحيح نه وى .

وَلَنَا اَنَّهُ اَتٰى بِمَعْنَى الْمُتْعَةِ زمونږ دليل دا دې چې دَغه دَ متعې په معنى كې راغلې دې، وَالْعِبْرَةُ فِى الْعُقُوْدِ لِلْمَعَانِىْ او په عقودو كې دَ معانئو اعتبار وى ،

**تشريح:-** زمونږ دليل دادې.چه په نكاح موقت كې د متعه معنى موجود ده.ځكه چې د نكاح موقت مطلب هم دادې.چه څو ورځې به نفع اخلم.او په عقودو كې د معانو اعتبار كيږى .د الفاظو نه كيږى .مثلا يوكس بل كس ته اووئيل.چه ته زما د مرګ نه روسته زماوكيل ئې.نو دې به وصى شى .او كه اووائى .چه ته زما دمرګ نه روسته زماوصى ئې.نو وكيل به وى .يا تاسو به وئيلې وى .چه كفاله،بشرط براة اصيل، حواله وى .او حواله،بشرط عدم براة اصيل، كفاله وى .نو هركله چې په عقودو كې دمعانيو اعتبار كيږى .او په نكاح موقت كې دِ متعه معنى اوموندې شوه.او قاعده ده.چه په كوم متعه صادق راشى .هغه باطل ده.نو نكاح موقت به هم باطل وى .

وَلَا فَرْقَ بَيْنَ مَا اِذَا طَالَتْ مُدَّةُ التَّاقِيْتِ اَوْ قَصُرَتْ او هيڅ توپير نشته په دې كې چې موده دَ تاقيت اوږده وى او كه كمه لِاَنَّ التَّاقِيْتَ هُوَ الْمُعَيِّنُ لِجِهَةِ الْمُتْعَةِ وَقَدْ وُجِدَ ځكه چې تاقيت جهت دَ متعې لره متعين كوونكې دې او هغه او موندې شو

**حل اللغة:** ① **طالت:** اوږده وى ② **التاقيت:** وخت مقرر كول

(۱) القول الراجح هو قول زفر ؒ كذا فى فتح القدير(۱۵۲\۳)و ردالمحتار(۷۲۶\۲) وردالمحتار(۳۱۸\۲) نقلاً عن القول الراجح(۲٤۸\۱)-

تشریح:- علامه مرغیناني رحمه الله فرمائی .چه په نکاح موقت کي کومه موده ذکر کیږی .که هغه اوږده وی او که کمه وی .په دواړه صورتونوکي به د بطلان حکم وی .ځکه چي وخت محدود کول،متعه متعین کونکي دي.اودا اومونديږ شو.په حقیقت کي دا د حسن بن زیاد رحمه الله د قول نه احتراز دي.هغه فرمائی .چه که دومره اوږده موده ذکر کړی شوه.چه په هغې کي دواړه ژوندی نشی پاتي کیدلي.نو په دي صورت کي به نکاح درست وی .ځکه چي دا به اوس د تابید په معنی کي شی .د ابوحنیفه رحمه الله نه هم یو روایت دادي.والله اعلم بالصواب.

## په عقد واحد کي حلالي اوحرامي ښځي سره د نکاح حکم

**وَمَنْ تَزَوَّجَ امْرَأَتَيْنِ فِي عُقْدَةٍ وَاحِدَةٍ** او چا چي نکاح کړي دوي [دوه] ښځي په یو عقد کي **وَإِحْدَاهُمَا لَا يَحِلُّ لَهُ نِكَاحُهَا صَحَّ نِكَاحُ الَّتِي يَحِلُّ نِكَاحُهَا** او حال دا وه چي په دغوکي د یوي نکاح دَ ده د پاره حلال نه وه نو دَ هغي نکاح به صحیح وی کومه چي دَ ده دَ پاره حلاله ده **وَبَطَلَ نِكَاحُ الْأُخْرَى لِأَنَّ الْمُبْطِلَ فِي إِحْدَاهُمَا** او بلي نکاح به باطلا وی ځکه چي مبطل په دوی کي په یوه کي دي

تشریح:- یو سړی په عقد واحد کي دوي [دوه] ښځو سره نکاح اوکړه.په دي دواړو کي یوه دده لپاره حلال ده.او یوه د نسب د قرابت،یا د رضاعت،یا په بله څه وجه حرام ده.نودديږ حکم دادي.چه کومه حلال وي. دهغي نکاح به درست وی .او کومه چي حرام وی .دهغې به باطل وی .دلیل دادي.چه بطلان په قدر د مبطل وی .او مبطل صرف په یوه کي دي.په دویمه کي نه دي.نو په کومه کي چي مبطل د نکاح موجود وی .دهغي نکاح به باطل وی .او په کومه کي چي مبطل د نکاح موجود نه وی .دهغي به درست وی .

**بِخِلَافِ مَا إِذَا جَمَعَ بَيْنَ حُرٍّ وَعَبْدٍ فِي الْبَيْعِ لِأَنَّهُ يَبْطُلُ بِالشُّرُوطِ الْفَاسِدَةِ** په خلاف دَ هغي نه هر کله چي آزاد او غلام لره په بیع کي جمع کړی .ځکه چي بیع په شروط فاسده سره فاسدیږی ، **وَقَبُولُ الْعَقْدِ فِي الْحُرِّ شَرْطٌ فِيهِ** او دي کي قبلول د عقد په آزاد کي شرط دی ،

تشریح:- په خلاف ددي چي یوکس که په عقد بیع کي ازاد اوغلام دواړه جمع کړی .نو په دي دواړو کي به بیع باطل وی .وجه د توپیر داده.چه هرکله آزاد اوغلام دواړه ئي په یوعقد کي جمع کړل.نو مشتری به په دواړوکي بیع قبلوی .یا به ئي په دواړوکي پریږدی .دا جائز نه ده.چه په څه کي ئي قبول کړی .او په څه کي ئي قبلوی .نو په غلام کي د عقد قبلولو لپاره به په آزاد کي د عقد قبلول شرط وی .او چونکه آزاد د بیع محل نه دي.په دي وجه به مطلب داوی .چه په غیر مبیع کي عقد قبلول د بیع لپاره شرط دی .اودا شرط فاسد دي.د کوم چي عقد تقاضا نه کوی .او دا وړاندي معلومه شوه.چه د شرط فاسد په وجه بیع فاسدیږی .ځکه چي نبی کریم ﷺ د بیع شراط (هغه بیع چي شرط په کي لګولي شوي وی ) نه منع فرمائیلي ده.نو دلته کي به هم بیع فاسد وی .په آزادکي هم او په غلام کي هم.

ددي په خلاف نکاح ده.چه په دي کي هم داصورت دي.چه په محلله کي عقدنکاح قبلولو لپاره په محرمه کي د قبولیت شرط اولګولي شو.اودا شرط فاسد دي.خونکاح په شروط فاسده سره نه باطلیږی .بلکه پخپله شرط فاسد باطلیږی .ځکه چي د محلله نکاح درست وی .اود محرمه باطل وی .



**ثُمَّ جَمِيعُ الْمُسَمَّى لِلَّتِي يَحِلُّ نِكَاحُهَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله** (1) بیا ټوله مسمی هغي ښځي لره ده دَ چا چي نکاح حلال دي په نزد دَ امام ابوحنیفه رحمه الله **وَعِنْدَهُمَا يُقْسَمُ عَلَى مَهْرِ مِثْلَيْهِمَا وَهِيَ مَسْأَلَةُ الْأَصْلِ** او صاحبین رحمهما الله فرمائی دَ دواړو په مهرِمثل به تقسیمولي شی او دا مسئله دَ اصل (مبسوط) ده

تشریح:- د امام ابوحنیفه واړه مهرمسمی به هم ددي ښځي لپاره وی .دکومي نکاح چي حلال وی . اود صاحبینو رحمهما الله په نیز به د دواړو په مهر مثل باندي تقسیمیږی . دلیل دادي.چه خاوند مهرمسمی د دواړو د بضع مقابل جوړکړي دي.د یوي ئي نه دي جوړکړي.نو موږ به هم د دواړو تقابل ساتو.د یوي به نه ساتو.د امام صاحب رحمه الله د دلیل حاصل دادي.چه انقسام صحت دِ مقابله د احکامو څني دي،او کومه ښځه چي د نکاح محل نه وی .دهغي په حق کي دسره مقابله باطل ده.نو دواړو اړخ ته مهر منسوب کول لغو دی .اود محرمه ذکر،او عدم ذکر دواړه برابر دی .اودا داسي ده.لکه څوك اووائی .چه ،ما د زرو درهمو په بدله کي نکاح اوکړه.دي خري اودي ښځي سره،نو دلته کي زر درهمه چي کوم مهر دي.نه به تقسیمیږی .نو هم دغه ړول د متن په مسئله کي به هم نشی تقسیمولي.علامه مرغیناني رحمه الله فرمائی .چه دا مسئله په مبسوط کي ذکر ده.

## د ښځي په دروغ دعوی باندي د قاضی فیصله

**وَمَنْ ادَّعَتْ عَلَيْهِ امْرَأَةٌ أَنَّهُ تَزَوَّجَهَا وَأَقَامَتْ بَيِّنَةً** چا دعوی او کړه یو ښځي چي ده ځماسره نکاح کړي ده،او بینه ئ هم قائم کړل، **فَجَعَلَهَا الْقَاضِي امْرَأَتَهُ وَلَمْ يَكُنْ تَزَوَّجَهَا وَسِعَهَا الْمُقَامُ مَعَهُ** نو قاضی دي لره دَ هغهٔ ښځه کړه،حال دا دي چي هغه ورسره نکاح نه وه کړي،نو ښځي لره ګنجائیش شتي چي دَ ده سره قیام اوکړي **وَأَنْ تَدَعَهُ يُجَامِعُهَا وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله وَهُوَ قَوْلُ أَبِي يُوسُفَ أَوَّلًا** او دا چي دغه سړي دَ ځان سره جماع کاوه ته پریږدی دا دَ امام ابوحنیفه رحمه الله په نزد ده او دا دَ امام أبویوسف رحمه الله اولني قول دي

حل اللغة① وسع: جائزده ،ګنجائش شته ② المقام:استوګنه،ډیره کیدل ③ تنفیذ: نافذ کول ④ المنازعة: جګړه ⑤ تزاحم:مقابل کیږی ،الاملاك:جمع د ملك،ملکیت]

تشریح:- صورت د مسئلي دادي.چه یوي ښځي په یوسړي باندي د دروغو دعوی اوکړه.چه دا زما خاوند دي.ماسره ده واده کړي وو.اودي په دي دروغ دعوی باندي ګواهان هم پیش کړل.قاضی دښکاره شهادت په وجه د ښځي په حق کي فیصله اوکړه.نود قاضی دا فیصله به نافذ وي اوکه نه؟ په دي اړه کي اختلاف دي.د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز به دا فیصله په ظاهره خو نافذ شی .خو باطناً به نه نافذ کیږی .

**وَفِي قَوْلِهِ الْآخَرِ وَهُوَ قَوْلُ مُحَمَّدٍ لَا يَسَعُهُ أَنْ يَطَأَهَا** (2) دَ ده دوهم قول او دَ غه دَ امام محمد رحمه الله قول دي دا دي چي دَ سړي دَ پاره دَ دي سره دَ وطی ګنجائیش نشته **وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ**

تشریح:- د امام ابویوسف رحمه الله دوهم قول هم دادي.او هم داقول د امام شافعی رحمه الله هم دي.د فقهاؤ په نیز ددي مسئلي عنوان داسي دي.چه[قضاء القاضی بشهادة الزور فی العقود والفسوخ ینفذعند أبی حنیفة رحمه الله ظاهرا أو باطنا] یعنی د درغو.په ګواهئ سره د قاضی فیصله په عقود او فسوخ کي د ابوحنیفه رحمه الله په نیز ظاهرا او باطنا دواړه شان نافذ کیږی .

(1) القول الراجح هو قول أبی حنیفة رحمه الله كذا فی فتح القدیر(۱۵۳\۳) وردالمحتار(۳۱۸\۲) والبحرالرائق (۱۸۹\۳) نقلاً عن القول الراجح (۲٤۹\۱)-

(2) القول الراجح هو قول الصاحبین رحمهما الله كذا فی الدرالمختار(۳۱۹\۲) والبحرالرائق (۱۹۱\۳) والهندیة (۲۸۲\۱) نقلاً عن القول الراجح (۲۵۰\۱)-

لِأَنَّ الْقَاضِيَ أَخْطَأَ الْحُجَّةَ إِذِ الشُّهُودُ كَذَبَةٌ او دا د امام شافعي رحمه الله قول دي، ځکه چې قاضي په حجت کي غلطي کړې ده ځکه چې ګواه دروغژن دي فَصَارَ كَمَا إِذَا ظَهَرَ أَنَّهُمْ عَبِيدٌ أَوْ كُفَّارٌ نو دا داسې شوه لکه چې ظاهره شي چې ګواهان غلامان یا کافر دي ،

تشریح:- د فریقینو د دلائلو نه وړاندې د مقدمه په طور دوې [دوه] خبرې په ذهن کي کېنوئ. اوله دا چه املاك په دوې [دوه] قسمه دی. املاك مرسله، او املاك مقیده. ① املاك مرسله دادی. چه په دې کي د ملك سبب ذکر نه وی. مثلاً تاسو اووئیل. چه دا وینځه زما لپاره ده. اودا دې اونه وئیل. چه اخستې دې ده. یا په وراثت کي ملاؤ شوې ده. یا څه بله ذریعه ده. او املاك مقیده دې ته وائی. چه د ملك سبب ذکر وی. مثلاً تا اووئیل. چه دا وینځه زماده. ما دا د فلانی نه اخستې ده. یا ماته په وراثت کي ملاؤشوې ده. د متن مسئله د املاك مقیده په اړه کي ده. ځکه چې په دې کي د تزوج سبب ذکر دې. ② دویمه خبره دا ده. چه نفاذ په دوې [دوه] قسمه دې. نفاذ ظاهری ، او نفاذ باطنی.

[1] نفاذ ظاهری خو دادې. چه د دنیاوی احکامو ترتب اوشی. مثلاً د ښځې قدرت ورکول. او په خاوند باندې نفقه، او کسوه واجبیدل. او نفاذ باطنی دادې. چه د الله تعالی په نیز حلت ثابت شی. په املاك مرسله کي قاضي د دروغو په ګواهۍ باندې فیصله اوکړه. نودا فیصله به په اتفاق سره ظاهراً نافذ وی. باطناً به نافذ نه وی. او که په املاك مقیده کي نې د دروغو په ګواهۍ باندې فیصله اوکړه. نود امام صاحب رحمه الله په نیز به ظاهراً او باطناً دواړه شان نافذ وی. اود امام محمد او امام شافعي رحمه الله په نیز به ظاهراً نافذ وی. او باطناً به نافذ نه وی. د امام ابویوسف رحمه الله اول قول د امام صاحب رحمه الله سره دې. او قول ثانی نې د امام محمد رحمه الله سره دې. ددې تفصیل نه روسته دلائل واوړئ.

[2] د امام محمد رحمه الله د دلیل حاصل دادې. چه ګواهان دروغژن دی. په دې وجه قاضي په حجت کي غلطي اوکړه. او، خطافی الحجة، نفوذ باطنی منع کوی. نود قاضي دا فیصله به خو ظاهراً نافذ وی. چه ددې په نتیجه کي به په خاوند باندې نفقه او کسوه واجب وی. خو باطناً به نافذ نه وی. چه ددې په وجه به خاوند لپاره دې ښځې سره وطی حلاله نه وی. ددې مثال دادې. چه د شهادت نه روسته که د شاهدېنو غلام یا کافر کیدل ښکاره شی. نو قاضي که فیصله ورکړې وی. نودا به ظاهراً نافذ وی. باطناً به نافذ نه وی. او په دې باندې د ټولو اجماع ده. نود ګواهانو د دروغژن کیدلو په صورت کي به هم د قاضي فیصله ظاهراً نافذ کیږي. باطناً به نه نافذ کیږي.

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ أَنَّ الشُّهُودَ صَدَقَةٌ عِنْدَهُ د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دا دې چې ګواه رشتونی دی دقاضي په نزد لِتَعَذُّرِ الْوُقُوفِ عَلَى حَقِيقَةِ الصِّدْقِ او دا حجت دې د وجه د تعذر نه په خبریدو د حقیقت د رشتیاؤ، وَهُوَ الْحُجَّةُ

تشریح:- د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادې. چه د قاضي د صدق په حقیقت باندې خبریدل خو متعذر دی. خود تعدیل وغیره نه دا ثابت شو. چه ګواهان د قاضي په نیز صادق دی. اود ګواهانو صادق کیدل حجت وی. او هرکله چې حجت قائم شو. نو په قاضي باندې فیصله کول لازم دی. تردې که په دې صورت کي دې دا اوګنړی. چې په ما باندې فیصله ورکول لازمی نه ده. نو کافر به وی. او که لازم نې اوګنړی. خو تاخیر اوکړی. نو فاسق به وی.

بِخِلَافِ الْكُفْرِ وَالرِّقِّ لِأَنَّ الْوُقُوفَ عَلَيْهِمَا مُتَيَسِّرٌ په خلاف د کفر او غلامی نه چې په دغو خبریدل آسان دی وَإِذَا ابْتَنَى الْقَضَاءُ عَلَى الْحُجَّةِ وَأَمْكَنَ تَنْفِيذُهُ بَاطِنًا بِتَقْدِيمِ النِّكَاحِ نَفَذَ قَطْعًا لِلْمُنَازَعَةِ او هرکله چې د فیصلې بنا (بنیاد) په حجت شو او دې لره باطناً نافذ کول ممکن هم دی نکاح لره په مقدم منلو سره نو فیصله به نافذه کړې شی د جګړې ختمولو د پاره. بِخِلَافِ الْأَمْلَاكِ الْمُرْسَلَةِ لِأَنَّ فِي الْأَسْبَابِ تَزَاحُمًا فَلَا إِمْكَانَ پخلاف د املاك مرسله نه ځکه چې په اسبابو کي مزاحمت دې نو هیڅ امکان نشته والله أعلم



تشریح:- د امام محمد او امام شافعي رحمه الله د قیاس ځواب دادې. چه په کفر او رقیت باندې خبریدل آسان دی. ځکه چې کافران او غلامان ددوی په خاصو علامتونو سره پیژندلې شی.

[1] نو هرکله چې د فیصلې بنا (بنیاد) په حجت باندې دې. او حجت اوموندې شو. نو فیصله به نافذ کولې شی. خو دلته کي یوسوال کیدلې شی. هغه داچه قضاء وائی ،اظهار ماکان ثابتاً، ته. ،اثبات مالم یکن ثابتاً، ته نه وائی. یعنی قضاء وائی. ثابت شوی شی ښکاره کاوه ته. اود غیر ثابت شوی شی ثابتولو ته نه وائی. او په ذکر شوې مسئله کي نکاح ثابت نه وه. نو باطناً به فیصله څنګه نافذ کولې شی ؟

[2] علامه مرغینانی رحمه الله [بتقدیم النکاح... إلخ] سره ددې اشکال ځواب ورکړې دې. د ځواب حاصل دادې. چه اقتضاءً به په فیصله باندې نکاح مقدم منلې شی. لکه چې قاضي اووئیل. ماخکي ستا نکاح ددې سرې سره اوکړله. بیامې ستاسو دواړو په مینځ کي ددې نکاح فیصله اوکړه. خو که په دې باندې څوك اشکال اوکړی. چه د قاضي دا فیصله د عقد نکاح انشاء ده. نود ګواهانو موجود کیدل شرط کیدل پکار دې ؟ نو ځواب دادې. چه د بعض په نیز شرط دې. اود بعضو په نیز نه دې. ځکه چې د عقد دا انشاء اقتضاء ثابت شوې ده. او کوم شی چې اقتضاء ثابتیږی. په هغې کي د شرائطو رعایت نه کیږی. زموږ په تائید کي دحضرت علی رضی الله عنه قول هم دې. دوی رضی الله عنه ته داسې ډول مسئله راپیښه شوه. کومه چې په متن کي ذکر ده. دوی د نکاح مسئله فیصله اوکړه. دې ښځې اووئیل. اې امیرالمؤمنین ده زماسره نکاح نه وه کړې. حضرت علی رضی الله عنه اوفرمائیل. [شاهداك زوجاك] ستا دواړو ګواهانو ستا نکاح اوکړه.

[3] [لقد قطعاً للمنازعة] سره د نفوذ باطنی علت بیان شوې دې. په [بخلاف الأملاك] سره فرمائی. چه املاك مقیده به په املاك مرسله باندې نشی قیاس کیدلې. ځکه چې په املاك مرسله کي صرف ظاهراً فیصله نافذ وی. باطناً نافذ نه وي. دلیل دادې. چه په املاك مرسله کي سبب د ملك مذکور نه وی. اود یوملك ډیر سببونه کیدلې شی. مثلاً د ملك سبب شراء هم کیدلې شی. او ،ارث، په معنی د هبه او صدقه هم، او په ټولو سببونو کي مزاحمت دې. نو که قاضي یو سبب متعین کړی. او فیصله اوکړی. نو ترجیح بلا مرجح لازمیږی. په دې وجه باطنی نفوذ ممکن نه دې.

## بابٌ في الأولياء والأكفاء

(دا) باب د اولیاء او اکفاء( په بیان کښې )دې.

تشریح:- اولیاء د ،ولی، جمع ده. او ولی ماخوذ دې د ولایت نه. او ولایت وائی. [تنفيذ الأمر على الغير] ته. یعنی په غیر باندې حکم نافذ کول. اکفاء د ،کفو، جمع ده. او کفو وائی. مثل او همسر (برابر) ته.

### د ولی نه بغیر د نکاح اعتقاد

وَيَنْعَقِدُ نِكَاحُ الْحُرَّةِ الْعَاقِلَةِ الْبَالِغَةِ بِرِضَاهَا او تړلې کیږې نکاح د آزادې عاقلې بالغې ښځې په رضا د دې سره وَإِنْ لَمْ يَعْقِدْ عَلَيْهَا وَلِيٌّ بِكْرًا كَانَتْ أَوْ ثَيِّبًا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُمَا اللَّهُ فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ اګر چې نه وی کړې ولی د دې، پیغله وي او که خاوند لیدلې وی ،په نزد د امام ابوحنیفه رحمه الله او ابی یوسف، په ظاهرا لر وایه کي وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رحمه الله أَنَّهُ لَا يَنْعَقِدُ إِلَّا بِوَلِيٍّ (1) او په نزد د ابی یوسف نه تړلې کیږی مګر په ولی سره. وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ يَنْعَقِدُ مَوْقُوفًا او د امام محمد رحمه الله په نزد به تړلې وی موقوف وَقَالَ مَالِكٌ وَالشَّافِعِيُّ رَحِمَهُمَا اللَّهُ لَا يَنْعَقِدُ النِّكَاحُ بِعِبَارَةِ النِّسَاءِ أَصْلًا لِأَنَّ النِّكَاحَ يُرَادُ لِمَقَاصِدِهِ او امام مالك رحمه الله او امام شافعي رحمه الله فرمائی چې نه تړلې کیږی نکاح په الفاظو د ښځو سره هر ګز. ځکه چې د نکاح نه مقاصد د نکاح مقصود وی وَالتَّفْوِيضُ إِلَيْهِنَّ مُخِلٌّ بِهَا إِلَّا أَنَّ مُحَمَّدًا رحمه الله يَقُولُ: يَرْتَفِعُ

(1) القول الراجح هو قول أبي يوسف رحمه الله وهو المختار للفتوى في زماننا كذا يفهم من تحقيق صاحب القول الراجح وارجع للتفصيل إليه (٢٥١/١)_

**الْخَلَلُ بِإِجَازَةِ الْوَلِيِّ** او دا ښځو ته سپارل مخل بالمقاصد دی مګر امام محمد رحمه الله دا فرمائی چې خلل به د ولی په اجازت مرتفع شی

**حل اللغة** ① **يرتفع:** پورته کیږی ② **الخلل:** رکاوټ ③

**تشریح:-** مسئله داده.چه دحرة، عاقله، بالغه نکاح ددې په رضامندئ، بغیر د ولی منعقد کیږی .او که نه منعقد کیږی ؟ د ظاهرالروایة مطابق د شیخینو رحمهما الله په نیز منعقدکیږی .اود ابویوسف رحمه الله نه په غیر ظاهر الروایت کې یو روایت دې.چه بغیر د ولی نه نکاح نه منعقد کیږی .اود امام محمد رحمه الله په نیز موقوف منعقد کیږی .که ولی اجازت ورکړی .نو نافذ به وی .او که اجازت ورنکړی .نو منعقد به نه وی .امام مالك او امام شافعی رحمه الله فرمائی .چه دښځو په الفاظ سره بالکل نه منعقد کیږی .

ⓐد امام مالك او امام شافعی رحمهما الله دلیل دادې.چه د نکاح نه د نکاح مقاصد مقصود وی .دا مقاصد ښځو ته سپارل، په دې کې خلل اچول دی .ځکه چې ښځې ناقصات العقل دی .په دې وجه ښځو ته به د نکاح اختیار نشی ورکیدلې.

ⓑامام محمد رحمه الله په دلیل کې فرمائی .چه خبره صحیح ده.خود ولی اجازت ور کاوه سره داخلل رفع کیږی .ځکه که ولی مناسب اوګنړی .نو اجازت به ورکړی .او که مناسب اونګنړی .نو اجازت به نه ورکوی .

**وَوَجْهُ الْجَوَازِ أَنَّهَا تَصَرَّفَتْ فِي خَالِصِ حَقِّهَا وَهِيَ مِنْ أَهْلِهِ لِكَوْنِهَا عَاقِلَةً مُمَيِّزَةً** او وجه د جواز دا ده چې ښځې خالص په خپل حق کې تصرف کړې دې او دغه د اهل د تصرف نه ده ځکه چې دغه عاقله ممیزه ده **وَلِهٰذَا كَانَ لَهَا التَّصَرُّفُ فِي الْمَالِ وَلَهَا اخْتِيَارُ الْأَزْوَاجِ** دا وجه ده چې دې له په مال کې د تصرف اختیار دې او د خاوندانو د خوښولو اختیار ئې شته **وَإِنَّمَا يُطَالَبُ الْوَلِيُّ بِالتَّزْوِيجِ كَيْ لَا تُنْسَبَ إِلَى الْوَقَاحَةِ** او د ولی نه د نکاح مطالبه ځکه کولای شی چې ښځه بې حیا ئې اړخ ته منسوبه نه شی ،

**تشریح:-** وجه د جواز داده.چه دې ښځې خالص په خپل حق کې تصرف کړې دې.ځکه چې د بضع بدل هم ددې لپاره دې.اودا ښځه د تصرف اهل هم ده.ځکه چې ممیز عقل لری .هم دا وجه ده.چه په مال کې هم د تصرف اختیار دې ښځې ته حاصل وی .خوکه څوك اشکال اوکړی .چه هرکله ښځه اختیارمنده ده.نو بیا د نکاح مطالبه د ولی نه ولې کیږی .د ښځو نه ولې نه کیږی ؟ ددې ځواب دادې.چه په داسې کولوسره به د ښځو اړخ ته بې حیائی منسوب کولې شی .ځکه چې ښځې د سړو مجلسونو اړخ ته په وتلو کې حیا محسوسوی .که داسې کوی .نو خلګ به دوی بې حیاګنړی .

**ثُمَّ فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ لَا فَرْقَ بَيْنَ الْكُفْءِ وَغَيْرِ الْكُفْءِ** بیا په ظاهر الروایه کې هیڅ توپیر نشته د کفو او د غیر کفو په مینځ کې **وَلٰكِنْ لِلْوَلِيِّ الِاعْتِرَاضُ فِي غَيْرِ الْكُفْءِ** لیکن ولی ته د اعتراض حق دې په غیر کفو کې **وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُمَا اللّٰهُ أَنَّهُ لَا يَجُوزُ فِي غَيْرِ الْكُفْءِ** او د شیخینو نه روایت دې چې په غیر کفو کې جائز نه دې **لِأَنَّهُ كَمْ مِنْ وَاقِعٍ لَا يُرْفَعُ وَيُرْوَى رُجُوعُ مُحَمَّدٍ إِلَى قَوْلِهِمَا** ځکه چې ډیر واقعات قابل مرافعه نه وی او د امام محمد رحمه الله نه د رجوع روایت دې د شیخینو قول ته.

**تشریح:-** بیا په ظاهرالروایة کې په کفو اوغیر کفوکې هیڅ توپیر نشته.یعنی که حره،عاقله بالغه خپله نکاح پخپله اوکړه.په کفوکې یا په غیرکفوکې .نو نکاح جائز ده.خود غیرکفو په صورت کې به ولی ته د خپل اړخ نه د شرم ضرر دفع کاوه دپاره، د اعتراض حق حاصل وی .اود ابوحنیفه او ابویوسف رحمهما الله نه په نوادر کې یو روایت دې.چه په غیرکفوکې نکاح دسره جائز نه ده.ځکه چې ډیر واقعات داسې شته.چه د نکاح واقع کیدلو نه روسته څوك ددې په دفع کاوه باندې دسره قادر هم نه وی .نه خو هر ولی د مرافعه (قاضی ته د مقدمې پیش کاوه صلاحیت لرلې شی .او نه هرقاضی عادل وی .نو احتیاط هم په دې کې دې.چه په غیرکفوکې بغیر د ولی نه د نکاح دروازې بندې کړې شی .او نقل شوی دی .چه امام محمد رحمه الله د شیخینو رحمهما الله دې قول اړخ



ته رجوع کړې وه.کوم چې په ظاهرالروایة کې دې.یعنی د امام محمد رحمه الله په نیز هم نکاح بغیر د ولی منعقد کیږی .اود ولی په اجازت باندې موقوف هم نه وی .

## په بالغه ښځې باندې ولایت اجبار

**وَلَا يَجُوزُ لِلْوَلِيِّ إِجْبَارُ الْبِكْرِ الْبَالِغَةِ عَلَى النِّكَاحِ** او جائز نه دې ولی لره د عاقلې بالغې مجبوره کول په نکاح باندې،

**تشریح:-** مسئله داده.چه زموږ په نیز به باکره بالغه په نکاح باندې نشی مجبورولې.که بغیر ددې د رضامندئ نه نکاح اوکړې شوه.نو ددې په اجازت باندې به موقوف وی .که رد ئې کړه.نو باطل به وی .او که د ولی اجازت اخستلو په وخت کې خاموش پاتې شوه.نودا به ددې د اړخه اجازت شمارلې شی .

**خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللّٰهُ لَهُ الِاعْتِبَارُ بِالصَّغِيرَةِ** په خلاف د امام شافعی رحمه الله نه،د ده دلیل په صغیره باندې قیاس دې **وَهٰذَا لِأَنَّهَا جَاهِلَةٌ بِأَمْرِ النِّكَاحِ لِعَدَمِ التَّجْرِبَةِ** او دا ځکه چې دغه د نکاح په معامله کې ناواقفه وی د عدم تجربې په بنا. **وَلِهٰذَا يَقْبِضُ الْأَبُ صَدَاقَهَا بِغَيْرِ أَمْرِهَا** په دې وجه پلار د دې مهر قبض کولای شی بغیر د دې د حکم نه.

**تشریح:-** د امام شافعی رحمه الله په نیز باکره بالغه په نکاح باندې مجبورول جائز دی .د امام شافعی رحمه الله دلیل دادې.چه دې باکره بالغه په صغیره باندې قیاس کوی .ځکه چې صغیره که باکره وی .نو لکه څنګه چې دا په نکاح باندې مجبورول جائزدی .دغه ډول بالغه باکره مجبورول هم جائز دی .د دواړو په مینځ کې جامع او مشترك علت،د تجربه نه کیدلو په وجه د نکاح د معاملو نه ناخبری ده.ځکه چې ښځې ترکومه پورې د سړو سره محارست (ګډون) نه وی کړې.نودا د نکاح د مصلحتونو،اود نکاح خرابیانو نه نشی خبریدلې.او باکره بالغه د نکاح معاملاتو نه ناخبره وی .په دې وجه ددې پلار بغیر ددې د حکم نه په مهر باندې قبضه کولې شی .

**وَلَنَا أَنَّهَا حُرَّةٌ مُخَاطَبَةٌ فَلَا يَكُونُ لِلْغَيْرِ عَلَيْهَا وِلَايَةٌ** زموږ دلیل دا دې چې دغه آزاده ده نو د غیر د پاره به په دې ولایت د اجبار نه وی **وَالْوِلَايَةُ عَلَى الصَّغِيرَةِ لِقُصُورِ عَقْلِهَا وَقَدْ كَمُلَ بِالْبُلُوغِ** او په صغیره ولایت د د دې د عقل د نقصان په وجه وه او په بالغیدو ئې عقل مکمل شو **بِدَلِيلِ تَوَجُّهِ الْخِطَابِ فَصَارَ كَالْغُلَامِ وَكَالتَّصَرُّفِ فِي الْمَالِ** په دلیل د متوجه کیدو د خطاب سره نو شوه پشان د هلك او پشان د تصرف په مال کې

**تشریح:-** زموږ دلیل دادې.چه باکره بالغه آزاده ده.او په آزاد باندې هیڅ چاته ولایت د اجبار حاصل نه وی .نو په باکره بالغه باندې به هم هیڅ چاته د اجبار ولایت نه وی .خو که څوك سوال اوکړی .چه صغیره هم آزاده ده.نو په دې باندې هم د اجبار ولایت نه دې پکار؟ نوددې ځواب دادې.چه په صغیره باندې د اجبار ولایت ددې د عقل د قصور په وجه دې.او په بالغ کیدلوسره عقل مکمل شو.نو په بالغه باندې د اجبار ولایت نه وی .او په صغیره باندې به وی .او ددې دلیل چې په بلوغ باندې عقل کامل کیږی .د الله تعالی خطاب د بالغه اړخ متوجه کیدل دی .چه ترکومه پورې نابالغه وی .نود شریعت د احکامو مکلفه نه وی .او هرکله چې بالغه شی .نو مکلف شی .او بالغه انجلی داسې ده.لکه بالغ هلك.یعنی لکه څنګه چې په بالغ هلك باندې د اجبار ولایت نه وی .دغه ډول په بالغه انجلی باندې هم د اجبار ولایت نه وی .اودا داسې ده.لکه ،تصرف فی المال، یعنی لکه څنګه چې باکره بالغه په خپل مال کې تصرف کولې شی .ددې پلار ته ددې په مال کې د تصرف اجازت نشته.دغه ډول باکره بالغه به په خپل نفس کې هم د تصرف اختیارمنده وی .د پلار یا دبل ولی اجازت شرط نه دې.

**وَإِنَّمَا يَمْلِكُ الْأَبُ قَبْضَ الصَّدَاقِ بِرِضَاهَا دَلَالَةً** او مالك کیږی پلار د قبض کاوه د د مهر په دضا د دې سره دلالة **وَلِهٰذَا لَا يَمْلِكُ مَعَ نَهْيِهَا** او په دې وجه نه مالك کیږی د دې په منع کاوه سره

**تشریح:-** پاتې شود امام شافعی رحمه الله دا وئیل.چه پلار بغیر ددې د حکم نه په مهر باندې قبضه کولې شی .نو موږ په ځواب کې دا وایو.چه هرکله پلار په مهر باندې قبضه اوکړه.نود انجلی د سکوت په وجه دلالة

رضامندی موجود شوه.كه انجلی په صراحت سره منع اوكړه.نو پلار به په مهر باندې د قبضه كاوه مالك نه وی.

**د باكره بالغې د اړخه د رضامندۍ د اظهار صورتونه**

قَالَ **وَإِذَا اسْتَأْذَنَهَا فَسَكَتَتْ أَوْ ضَحِكَتْ فَهُوَ إِذْنٌ** نو هر كله چې اجازت طلب كړو دَ باكرې بالغې نه دَ دې ولی او داچوپ پاتې شوه یا ئې او خندل نو دا اجازت دې **لِقَوْلِهِ عليه الصلاة والسلام الْبِكْرُ تُسْتَأْمَرُ فِي نَفْسِهَا، فَإِنْ سَكَتَتْ فَقَدْ رَضِيَتْ** (۱) دَ ارشاد نبوی په وجه سره چې دَ باكرې نه دې دَ دې دَ ذات په اړه كې اجازت اغستې شی نو كه دا چوپ پاتې شوه نو دا دَ دې رضا ده. **وَلِأَنَّ جَنْبَةَ الرِّضَا فِيهِ رَاجِحَةٌ لِأَنَّهَا تَسْتَحْيِي عَنْ إِظْهَارِ الرَّغْبَةِ لَا عَنِ الرَّدِّ** او ځكه چې په‌چوپ پاتې كیدو كې دَ رضا جهت غالب دې ځكه چې حیا كوی دغه دَ اظهار دَ رغبت نه نه چې دَ رد او انكار نه

حل اللغة* ① **تستامر**: اجازت اغستې شی ② **الضحك**: خندا ③ **السكوت**: چپوالې، چوپوالې ④ **المستهزئة**: تپوقې كونكې ⑤ **صوت**: آواز ⑥ **بكت**: ژاړی ]

**تشریح:**- مسئله داده.چه دنكاح نه مخكې ولی د باكره بالغه نه اجازت اوغوښتلو.هغې چې واوریدل،نو خاموش شوه.یا ئې اوخندل.نودا خاموش پاتې كیدل،یا خندل به ددې د اړخه اجازت وی .دغه ډول ضحك( تبسم او مسكئ كیدل) هم د رضامندئ دلیل دې.علامه مرغینانی رحمه الله په دلیل كې د نبی كریم ﷺ ارشاد نقل كړې دې.چه د باكره ښځه به ددې د ذات په اړه كې رائې اخستلې شی .كه دا خاموش شوه.نودا به رضامندی وی .دلیل عقلی دادې.چه په‌چوپ پاتې كیدلوكې او په خندلوكې د رضامندئ معنی غالب ده.ځكه چې باكره د رغبت په ښكاره كاوه شرمیږی .خو په انكار كاوه نه شرمیږی . نوكه دا ناراضه وې.نو صفا صفا به ئې انكار كړې وې.خودا انكار نه كول،ددې د رضامندئ دلیل دې.

**وَالضَّحِكُ أَدَلُّ عَلَى الرِّضَا مِنَ السُّكُوتِ، بِخِلَافِ مَا إِذَا بَكَتْ.** او خندا زیاته دال ده په رضا باند په نسبت دَ سكوت نه بخلاف دَ هغې نه چې كله او ژاړی **لِأَنَّهُ دَلِيلُ السُّخْطِ وَالْكَرَاهَةِ** ځكه چې دا دَ ناراضتیا او نا خوښی دلیل دې **وَقِيلَ إِذَا ضَحِكَتْ كَالْمُسْتَهْزِئَةِ بِمَا سَمِعَتْ لَا يَكُونُ رِضًا** او وئیلی شوی دی هر كله چې اوخاندی دا سې لكه چې په آوریدلې خبره پورې مسخره اوكړی دا رضا نه ده **وَإِذَا بَكَتْ بِلَا صَوْتٍ لَمْ يَكُنْ رَدًّا** او كله چې اوژاړی بغیر آواز نه نو دا انكار نه دې.

**تشریح:**- كه تاسو ته دا اشكال پیداشی .چه په حدیث كې دسكوت بیان شته.خود ضحك(خندلو) نشته.نو بیا تاسو ،ضحك،د رضامندئ دلیل ولې جوړكړې دې؟ علامه مرغینانی رحمه الله په خواب كې فرمائی .چه ضحك د سكوت په مقابله كې په رضامندئ باندې زیات دلالت كوی .ځكه چې ضحك په قول مسموع باندې د خوشحالئ او فرحت علامت دې.نوهركله چې سكوت د رضا دلیل دې.نو ضحك به په درجه اولی د رضامندئ دلیل وی .البته د باكره بالغه جړل به د رضامندئ دلیل نه وی .بلكه د ناخوښئ دلیل به وی . د بعض حضراتو رائې داده.كه باكره د استهزاء په اندازكې اوخندل.نودا خندا به د باكره رضامندی نشی شمارلې.ځكه چې دا به د ولی د خبرې تمسخر(خندا) وی .اجازت به نه وی .اوكه باكره بغیر د آوازه اوژړل.نودا به ددې د اړخه انكار نشی شمارلې.ځكه چې ډیركرته د موړپلار نه دجدایئ په خبر باندې بغیر د

(۱) غربه الزیلعی رحمه الله بهذا اللفظ ثم ذكر عن أبی هریرة رضی الله عنه أن النبی ﷺ قال لا تنكح الأیم حتی تستأمرولاتنكح البكر حتی تستأذن قالوا یارسول الله ﷺ وكیف إذنها ق ﷺ أن تسكت أخرجه البخاری فی النكاح باب ٤١ ومسلم فی النكاح رقم ٦٤ وأبوداود فی النكاح باب ٢٣ رقم ٢٠٩٢ والترمذی فی النكاح باب ١٧ رقم ١١١٠ والنسائی فی النكاح باب ١١ رقم ١٨٧١ والدارمی فی النكاح باب ١٣ وأحمد فی المسند(٤٣٤/٢) ( نصب الرأیة ٢٤٣/٣)_



اختیاره اوښكې روانیږی .په دې فتوی ده.بلكه كتلې شی .چه كله كله د خوشئ په خبر باندې هم اوښكې راوځی .نودا بغیرآوازه ژړا به انكار او رد نه ګڼړلې كیږی .

**د ولی نه بغیر دبل كس د باكره نه د اجازت غوښتلو په وخت كلام**

قَالَ **وَإِنْ فَعَلَ هَذَا غَيْرُ وَلِيٍّ** **يَعْنِي اسْتَأْمَرَ غَيْرُ الْوَلِيِّ** او كه اوكړل دا غیر ولی ،یعنی اجازت او غوښتو دَ ولی نه بغیر **أَوْ وَلِيٌّ غَيْرُهُ أَوْلَى مِنْهُ** **لَمْ يَكُنْ رِضًا حَتَّى تَتَكَلَّمَ بِهِ** او یا داسې ولی چې دَ دهٔ نه غیر دَ دهٔ نه زیات قریب دې بل چا، نو رضابه نهٔ وی ،تر دې چې دَ رضا خبره اوكړی **لِأَنَّ هَذَا السُّكُوتَ لِقِلَّةِ الِالْتِفَاتِ إِلَى كَلَامِهِ فَلَمْ يَقَعْ دَلَالَةً عَلَى الرِّضَا** ځكه چې دا سكوت دَ دهٔ دَ كلام اړخ ته دَ كموالی دَ التفات په وجه سره دې نو دا به دال په رضا نه وی

حل اللغة* ① **قلة**: كموالې ② **السكوت**: چپوالې ③ **الاكتفاء**: بسوالې ]

**تشریح:**- مسئله داده.كه د باكره بالغه نه غیر ولی اجازت اوغوښتلو.یاد ولی اقرب په موجودګئ كې ولی ابعد د نكاح اجازت اوغوښتلو.نو په دې دواړو صورتونوكې به ،سكوت، یا ،ضحك، د رضامندئ دلیل نه وی .بلكه د اجازت ور كاوه لپاره په ژبه باندې خبرې كول ضروری وی .ځكه چې د اجنبی یا د ولی ابعد د خبرې په خواب كې چوپوالې د توجه نه كاوه په وجه ده.دې ته د رضامندئ دلیل نشی وئیلې.

**وَلَوْ وَقَعَ فَهُوَ مُحْتَمَلٌ وَالِاكْتِفَاءُ بِمِثْلِهِ لِلْحَاجَةِ** او كه وی هم نو محتمل دې او اكتفاء په داسې باند دَ حاجت په وجه ده **وَلَا حَاجَةَ فِي حَقِّ غَيْرِ الْأَوْلِيَاءِ** او دَغیر اولیاء په حق كې حاجت نشته **بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ الْمُسْتَأْمِرُ رَسُولَ الْوَلِيِّ لِأَنَّهُ قَائِمٌ مَقَامَهُ** په خلاف دَ هغې نه چې اجازت غوښتونكې دَ ولی قاصد وی ځكه چې دغه دَ ولی قائمقام دې

**تشریح:**- كه د لږ وخت لپاره اومنلې شی .چه دا چوپوالې هم د رضامندئ دلیل دې.نو احتمال په دې كې د عدم رضا هم شته.او په دې ډول رضامندئ باندې اكتفاء كول،د حاجت په وجه دی .اود غیر اولیاء په حق كې هیڅ حاجت نشته.ځكه چې باكره بالغه د غیراولیاء په مخكې په كلام كاوه نه شرمیږی .البته كه اجازت غوښتونكې د ولی قاصد وی .نودې به د ولی قائم مقام ګڼړلې شی .اود ولی په حكم كې به وی .

**باكره بالغې ته د اجازت غوښتلو په وخت د خاوند تعارف كول**

**وَيُعْتَبَرُ فِي الِاسْتِئْمَارِ تَسْمِيَةُ الزَّوْجِ عَلَى وَجْهٍ تَقَعُ بِهِ الْمَعْرِفَةُ** او معتبر دې په طلب دَ اجازت كې دَ خاوند ذكر ،په داسې طور چې په دغې سره دَ خاوند شناخت اوشی **لِتَظْهَرَ رَغْبَتُهَا فِيهِ مِنْ رَغْبَتِهَا عَنْهُ** چې ظاهر شی په دهٔ كې دَ باكرې رغبت دَ دې دَ بې رغبتی دَ دهٔ نه

حل اللغة* ① **الاستمار**: طلب د اجازت ② **المعرفة**: پیژندګلو ③ **تسمیة**: نامداركول]

**تشریح:**- د بالغه باكره نه د اجازت غوښتلو په وخت به د خاوند داسې تعارف كولې شی .چه دې د ټولو خلګو نه جدا(ممتاز) شی .اودا معلومه شی .چه دا باكره بالغه دې مسمی زوج سره رغبت ساتی .اوكه بې رغبتی

**وَلَا تُشْتَرَطُ تَسْمِيَةُ الْمَهْرِ هُوَ الصَّحِيحُ لِأَنَّ النِّكَاحَ صَحِيحٌ بِدُونِهِ** او شرط نه دې ذكر دَ مهر،او دا صحیح ده ځكه چې نكاح صحیح دې بغیر د دې نه

**تشریح:**- د اجازت په وخت كې د مهر ذكر كول ضروری نه دی .ځكه چې نكاح د مهر ذكر كاوه نه بغیر هم صحیح كیږی .ځكه چې د مهر تعین كول د نكاح د ضروریاتو څنې نه دی .خود بعضو متاخرینو رائې داده.چه د اجازت په وخت د مهر متعین كول ضروری دی .ځكه چې په قلت اوكثرت كې د مهر په اختلاف سره هم رغبت مختلف كیږی . ړومبې قول صحیح دې.

**د نكاح په خبر باندې د باكره بالغې خاموشی**

**وَلَوْزَوَّجَهَا فَبَلَغَهَا الْخَبَرُ فَسَكَتَتْ فَهُوَعَلَى مَاذَكَرْنَا** که ولی دَ باکرې بالغ نکاح او کړو بیا دې ته خبر او رسیدو او دا خاموش شوه نو تفصیل ئ هغه دې چې کوم موږ ذکر کړو **لِأَنَّ وَجْهَ الدَّلَالَةِ فِي السُّكُوتِ لَايَخْتَلِفُ** ځکه چې دَ دلالت وجه سکوت کي مختلف نهٔ وی ،

**حل اللغة:** ① **فضولي**: اجنبی کس چې ولی نه وی ]

**تشريح:**- ولی د باکره بالغه نکاح اوکړه.بیا دې باکره بالغه ته خبر اورسیدلو.چه واویریدل.نو خاموشه شوه.نو په دې اړه کي هم هغه تفصیل دې.د کوم ذکر چې وړاندې اوشو.یعنی مخبر که ولی وی .یا د ولی قاصد وی .نو ددې سکوت اوضحك(خاموشي اوخندل) به اجازت وی .اوَ بکاء(ژړل) به اجازت نه وی .اوکه مخبر غیر ولی ،یا ولی ابعد وی .نو په ژبه باندې اجازت ورکول ضروری دی .ګنی اجازت به نه وی .دلیل دادې.چه په سکوت کي د رضامندي دلالت مختلف نه وی .که د نکاح نه مخکي وی .او که روسته وی .

**ثُمَّ الْمُخْبِرُ إِنْ كَانَ فُضُولِيًّا يُشْتَرَطُ فِيهِ الْعَدَدُ أَوِالْعَدَالَةُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ** رحمه الله (١) بیا مخبر که فضولی وه نو شرط دې پکي عدد او یا عدالت دَ امام ابوحنیفه رحمه الله په نزد، **خِلَافًا لَهُمَا، وَلَوْكَانَ رَسُولًا لَا يُشْتَرَطُ إِجْمَاعًا وَلَهُ نَظَائِرُ** خلاف دې صاحبینو رحمهما الله لره او که مخبر قاصد وه نو په اجماع شرط نه دې او دَ دې نظائر موجود دی

**تشريح:**- بیا که مخبر فضولی وی .چه نه ولی دې.او نه قاصد دې.نود امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز په دې کي د تعداد یا عدالت موجود کیدل ضروری دی .یعنی مخبر چې کم ازکم دوې [دوه] وی .او که یو وی .نو چې عادل وی .د صاحبینو رحمهما الله په نیز په دې دواړوکي هیڅ شرط نشته. مخبر که یو وی .او که زیات وی .که عادل وی .اوکه غیر عادل وی .او که مخبر د ولی قاصد وی .نو په اتفاق سره هیڅ شرط نه دی .
اوددې اختلاف ډیر مثالونه دی .مثلاً یوکس خپل وکیل معزول کړی .یو فضولی دې وکیل ته د عزل خبر ورکړو.نود امام صاحب رحمه الله په نیز به په فضولی کي عدد یا عدالت شرط وی .اود صاحبینو رحمهما الله په نیز به هیڅ شرط نه وی .

### د ثیبه ښځې د نکاح د اجازت د پاره کلام ضروری دي

**وَلَوِاسْتَأْذَنَ الثَّيِّبَ فَلَابُدَّ مِنْ رِضَاهَا بِالْقَوْلِ** که دَ ثیبې نه ئ دَ نکاح اجازت طلب کړو نو دَ دې رضامندی په قول سره ضروری ده. **لِقَوْلِهِ عليه الصلاة والسلام الثَّيِّبُ تُشَاوَرُ** (٢) ځکه چې دَ نبی علیه السلام ارشاد دې چې دَ ثیبې نه دې مشوره طلب کړې شی .

**حل اللغة:** ① **الممارسة**: تجربه ② **النطق**: خبرې]

**تشريح:**- که د ،ثیبه، بالغه نه د نکاح په اړه کي اجازت اوغوښتلې شو.نو ددې دارخه به د رضامندئ اظهارپه ژبه ضروری وی .دلیل د نبی کریم ﷺ ارشاد [الثیب تشاور] دې.تشاور ،مشاورت د مفاعلت ځنې دې.اود مفاعلت خاصه ده.اشتراك،او مشوره وانې .طلب د رائې بالقول ته.یعنی په ژبه باندې د رائې طلب کول.نو هرکله چې په،احد الجانبین،کي قول شته.نو په جانب آخر کي به هم قول وی .نود حدیث تقاضا تکلم دې.اوهم دا اصل دې.

**وَلِأَنَّ النُّطْقَ لَايُعَدُّ عَيْبًا مِنْهَا وَقَلَّ الْحَيَاءُ بِالْمُمَارَسَةِ فَلَامَانِعَ مِنَ النُّطْقِ فِي حَقِّهَا** او ځکه چې دَ دې په حق کي خبرې عیب نهٔ شی شمارلې او حیاء په وجه دَ ممارست کمه شوې ده نو دَ دې په حق کي دَ خبرو نه څهٔ مانع نشته،

(١) القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في الخانية (٣٤٢\١) ورد المحتار(٣٢٤\٢) والبحر الرائق (١٩٩\٣) والهندية (٢٨٧\١)
نقلاً عن القول الراجح (٢٥٣\١)-
٢) غربه الزيلعي بهذا اللفظ ثم قال وتقدم معناه قريبا (أى حديث أبى هريرة رضي الله عنه ) (نصب الراية (٣/٢٤٤)_



**تشريح:**- دوهم دلیل عقلی دادې.چه کلام کول،د ثیبه په حق کي عیب نه شمارلې کیږی .اود سړوسره د اختلاط په وجه ددې حیاء هم کمه شوه.نو ددې په حق کي د کلام کاوه نه هیڅ مانع نشته.

### په زنا یا په بل څه ه وجه دانجلۍ بکارت زائل کیدلوحکم

**وَإِذَازَالَتْ بَكَارَتُهَا بِوَثْبَةٍ أَوْحَيْضَةٍ أَوْجِرَاحَةٍ أَوْتَعْنِيسٍ فَهِيَ فِي حُكْمِ الْأَبْكَارِ** او هر کله چې زائله شی بکارت دَ باکرې په توپ وهلوسره او یا چې حیض یا په زخم کیدو یا بې نکاح یو مده په کیناستو نو دَغه دَ باکرې په حکم کي ده، **لِأَنَّهَا بِكْرٌ حَقِيقَةً لِأَنَّ مُصِيبَهَا أَوَّلُ مُصِيبٍ لَهَا** ځکه چې دغه په حقیقت کي باکره ده ځکه چې دې ته رسیدونکې اولنې رسیدونکې دې، **وَمِنْهُ الْبَاكُورَةُ وَالْبُكْرَةُ وَلِأَنَّهَا تَسْتَحْيِي لِعَدَمِ** دَ دې نه باکوره او بُکره ده او په یدې وجه چې دا دَ عدم ممارست په وجه شرمیږی .

**حل اللغة:** ① **وثبة**: توپ ② **جراحة**: زخم ③ **تعنيس**: زیاته موده بې واده پاتې کیدل ④ **تتعطل**: معطل کیږی ⑤ **ندب**: رغبت ورکړې شوې ⑥ **ستر**: پټوالې ]

**تشريح:**- مسئله داده.که د یوې ښځې بکارت زائل شو.د توپونو په وجه،یا د حیض د کثرت په وجه،یا د ځه زخم په وجه،یا زیاته موده پاتې کیدلو په وجه،نو په دې ټولوصورتونوکي به دا انجلی د باکره په حکم کي وی .یعنی د استیذان په وخت به ددې سکوت اذن وی .کلام کول به ضروری نه وی . دلیل دادې.چه دا ښځه په حقیقت کي باکره ده.اود،باء کاف را، په ماده کي د اولیت معنی موجود ده.لکه ،باکوره ،ړومبی میوه،او،بکره، ړومبی صبا، ته وائی .نو دې ښځې ته چې څوك هم ړومبې اورسیږی .هغه به ړومبې رسیدونکې شمارلې شی .نو دې ښځې ته به د باکره حکم ورکولې شی . دوهم دلیل دادې.چه دې ښځې ته د سړو سره د اختلاط او محارست موقع خو ملاؤ شوې نه ده.نودا به هم د حیاء اود شرم په وجه په ژبه باندې اجازت نه ورکوی .

**وَلَوْزَالَتْ بَكَارَتُهَا بِزِنًا فَهِيَ كَذَلِكَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ** رحمه الله (١) اوکه دَ دې بکارت زائل شو په زنا سره نو هم داسې ده،په نزد دَ امام ابوحنیفه رحمه الله باندې **وَقَالَ أَبُويُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ وَالشَّافِعِيُّ: لَايُكْتَفَى بِسُكُوتِهَا لِأَنَّهَا ثَيِّبٌ حَقِيقَةً لِأَنَّ مُصِيبَهَا عَائِدٌ إِلَيْهَا** او صاحبین رحمهما الله او امام شافعی رحمه الله فرمائی چې دَ دې په سکوت اکتفا نهٔ شی کولې ځکه چې دَغه په حقیقت کي ثیبه ده ځکه چې څوك دې ته او رسیدو دا به ورته دوباره او رَسی **وَمِنْهُ الْمَثُوبَةُ وَالْمَثَابَةُ وَالتَّثْوِيبُ** دَ دې نه دې مثوبه او مثابه او تثویب،

**تشريح:**- اوکه د ښځې بکارت په زنا سره زائل شو.نود امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز به داهم د باکره په حکم کي وی .اود صاحبینو او امام شافعی رحمه الله په نیز به د ثیبه په حکم کي وی .نو ددې په سکوت باندې به اکتفاء نه کیږی .بلکه په ژبه باندې اجازت ورکول به ضروری وی .ددې حضراتو دلیل دادې.چه د،ث یا،ب، په ماده کي دعود معنی پرته ده.مثلاً ،مثوبه، د نیك عمل جزاء ته وائی . نو اوس ګویا چې دوباره عمل ملاؤشو. دغه ډول ،مثابه، د باربار واپس کیدلو ځائې ته وائی .په دې وجه مکې ته مثابه وائی .چه خلګ باربار د حج اوعمره لپاره واپس ځی .دغه ډول ،تثویب، اعلام بعد اعلام ته وائی .
اود دلیل حاصل داشو.چه د کومې ښځې بکارت په زناء سره زائل شی .هغه په حقیقت کي ثیبه ده.ځکه چې څوك دې ته په ړومبی ځل اورسیدلو.دوباره هم دغه فعل دې.نو هرکله چې دې ښځې سره به دوباره هم دغه فعل واقع کیږی .کوم چې یوځل په زنا سره شوې دې.نو هغه ثیبه ده.نو په دې باندې به د ثیبه احکام لګولې شی .

(١) القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في فتح القدير(١٧٠\٣) والخانية (١٦٠\١) ورد المحتار(٣٢٨\٢) والهندية (٢٩٠\١)
نقلاً عن القول الراجح (٢٥٤\١)-

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ أَنَّ النَّاسَ عَرَفُوهَا بِكْرًا فَيُعَيِّبُونَهَا بِالنُّطْقِ فَتَمْتَنِعُ عَنْهُ دَ امام ابوحنیفه‌رحمه‌الله دَ لیل دا دي چي خلګ دي لره باکره ګڼړي نو په نطق سره به په دي عیب اولګوی نو دا به دَ نطق نه منع شي فَيُكْتَفَى بِسُكُوتِهَا كَيْ لَا تَتَعَطَّلَ عَلَيْهَا مَصَالِحُهَا په دي وجه به دَ دي په سکوت اکتفا کولای شي چي دَ دي مصالح چرته معطل نهٔ شي ،

**تشریح:-** د امام ابوحنیفه‌رحمه‌الله دلیل دادي.چه خلګ دا ښځه باکره ګڼړي .اوس که کلام کوی .نو خلګ به دا معیوبه ګرځوی .او ددې ځځه به دا حیاء کوی .اود کلام کاوه ځځه به منع کیږي .چه ددې په نتیجه کي به ددې مصلحتونه معطل پاتي شي .په دي وجه به دا د باکره په حکم کي ساتلي شي .

بِخِلَافِ مَا إِذَا وُطِئَتْ بِشُبْهَةٍ أَوْ بِنِكَاحٍ فَاسِدٍ په خلاف دَ هغې نه چي دَ چا سره وطی بالشبهه یا وطی په نکاح فاسد او شي لِأَنَّ الشَّرْعَ أَظْهَرَهُ حَيْثُ عَلَّقَ بِهِ أَحْكَامًا، أَمَّا الزِّنَا فَقَدْ نُدِبَ إِلَى سَتْرِهِ ځکه چي شرع دي لره ظاهر کړو په دي شان چي احکام ئ ور پورې معلق کړی دی پاتي شوه زنا دَ دي دَ پټولو رغبت ور کړې شوې دي حَتَّى لَوِ اشْتَهَرَ حَالُهَا لَا يُكْتَفَى بِسُكُوتِهَا تر دي چي که ددې حال ښکاره شي نو په سکوت به ئ بیا اکتفا نهٔ شي کولي

**تشریح:-** البته که د باکره سره ،وطی بشبه، اوشوله.یا په نکاح فاسد سره وطی اوشوه.نودا په اتفاق سره ثیبه شمارلې شي .ځکه چي شریعت په دې باندې د ثیبه احکام لګولي دی .اودا ئې ښکاره کړې ده.مثلاً عدت به واجب وی .مهریه واجب وی .او پاتي شوه زنا ،نو په دې کي پوا‌ړه مستحب دی .تردې که چرې ددې حال مشهور شو.او په زنا باندې څلورو ګواهانو ګواهي ورکړه.نو بیا به داهم د ثیبه په حکم کي وی .او ددې په سکوت به اکتفاء نشي کولې.والله اعلم بالصواب

### د نکاح په خبر د ښځي په خاموشئ یا رد کولوکي د ښځي اوسړي اختلاف

وَإِذَا قَالَ الزَّوْجُ بَلَغَكِ النِّكَاحُ فَسَكَتِّ وَقَالَتْ رَدَدْتُ فَالْقَوْلُ قَوْلُهَا کله چي خاوند او وې کله چي تاته دَ نکاح خبر در او رسید و نو تهٔ خاموش شوې او هغې او وې مارد کړې وه نو د ښځي قول به معتبر وی ،

**حل اللغة:** ① عارض عارضی څیز② البضع: د ښځي شرمګاه ③ المودع: امانت کیخودونکي ④ استحلاف: قسم ورکول ⑤ المضي تیریدل ⑥ المدة: موده ،وخت]

**تشریح:-** صورت د مسئلې دادې.چه یوسړی ښځي ته اوونیل.چه تاته کله د نکاح خبرملاؤشو.نو تا چوپوالي اختیارکړلهٔ نو زماسره ستا نکاح لازم شوه.ښځي اوونیل.چه اطلاع ملاؤشوه.نوما رد کړې وه.نو نکاح اونشوه.او ګواهان دي دواړو سره موجود نشته.نو زموږ په نیز به د ښځي قول معتبر وی .

وَقَالَ زُفَرُ رَحِمَهُ اللَّهُ: الْقَوْلُ قَوْلُهُ لِأَنَّ السُّكُوتَ أَصْلٌ وَالرَّدَّ عَارِضٌ امام زفررحمه‌الله فرمائي چي دَ خاوند قول به معتبر وی ځکه چي سکوت اصل دې او رد کول عارض دي. فَصَارَ كَالْمَشْرُوطِ لَهُ الْخِيَارُ إِذَا ادَّعَى الرَّدَّ بَعْدَ مُضِيِّ الْمُدَّةِ نو دا دَ مشروط لهٔ الخیار پشان شو کله چي هغه دعوی اوکړی دَ رَد کاوه نو دَ تیرید و دَ مُدې نه.

**تشریح:-** اود امام زفررحمه‌الله په نیز به د سړی قول معتبر وی . دلیل دا دې.چه سکوت اصل دې.ځکه چي سکوت نوم دې،دعدم کلام.او په هرڅیزکي عدم اصل دې.او ردکول عارض یعنی خلاف اصل دی .نو سړې مدعی علیه اوښځه مدعیه شوه.او مدعیه سره ګواه نشته.نود مدعی علیه یعنی د زوج قول به معتبر وی .اودا داسې ده.لکه چي یوسړي د یوکس نه اس واخلی .اود بائع لپاره درې ورځې خیار وی .که غواړی په درې ورځوکښې عقد بیع مات کړی .او که غواړی پاته ئې اوساتی .درې ورځې روسته مشتری اووائی . چي تا په مدت خیار کي سکوت اختیار کړو.او بائع اووائی .چه ما ردکړې وه.نو په دې مسئله کي مدعی علیه څوک چي د سکوت دعوی کوی .دده قول به معتبر وی .ځکه چي سکوت اصل دې.او ردکول عارض دې.دغه ډول د متن په مسئله کي به هم د مدعی سکوت،یعنی د خاوند قول معتبر وی .



وَنَحْنُ نَقُولُ إِنَّهُ يَدَّعِي لُزُومَ الْعَقْدِ وَتَمَلُّكَ الْبُضْعِ وَالْمَرْأَةُ تَدْفَعُهُ موږ دا وايو چي دَغه دَ لزوم دَ عقد او دَ بضع دَ مالك کیدو دعوی کوی او ښځه دَ دې دفع کوی فَكَانَتْ مُنْكِرَةً كَالْمُودِعِ إِذَا ادَّعَى رَدَّ الْوَدِيعَةِ بِخِلَافِ مَسْأَلَةِ الْخِيَارِ نو ښځه مُنکره شوه لکه مودع چي هر کله دعوی او کړی دَ آمانتو دَ واپس کولو،په خلاف دَ مسئلې دَ خیار نه لِأَنَّ اللُّزُومَ قَدْ ظَهَرَ بِمُضِيِّ الْمُدَّةِ ځکه چي لزوم ظاهر شو په مُده تیریدو سره.

**تشریح:-** زموږ د دلیل حاصل دادې.سړې دعوی کوی .چه عقد د نکاح لازم شو.او زه د بضع مالك شوم.او ښځه ددې انکارکوی .او اصل عدم نکاح،او عدم تملك د بضع دې.نود سړی قول به د اصل خلاف وی .اود ښځي به د اصل موافق وی .او دچا قول چي د اصل خلاف وی .هغه مدعی وی . او دچا چي د اصل موافق وی . هغه مدعی علیه وی .اود مدعی یعنی سړی سره ګواهان نشته.نود مدعی علیه یعنی د ښځي قول به معتبر وی .اودا داسې ده.لکه مؤدع چاسره چي امانتونه ایخودلې شي .دې وائی .چه ما امانت اداکړې دې. او صاحب د ودیعت وائی .چه اداکړې دې نه دې.نو دلته کي به د مؤدع قول معتبر وی .ځکه چي مؤدع د ذمي د فراغت دعوی کوی .او صاحب د ودیعت د ذمې د مشغولیدلو دعوی کوی .او فراغت د ذمه اصل دې.اود ذمه مشغولیدل خلاف اصل وی .نو مؤدع مدع علیه شو.او صاحب د ودیعت مدعی شو.اود مدعی سره بینه نشته.نود مدعی علیه قول به معتبر وی .د امام زفررحمه‌الله د قیاس ځواب دادې.چه دخیارشرط په صورت کي د عقد بیع لزوم په دې وجه نه دې شوې.چه د سکوت د مدعی قول معتبر منلې شوې دې.بلکه د خیار د مودې په تیریدلو سره پخپله عقد بیع لازم شوې دې.

وَإِنْ أَقَامَ الزَّوْجُ الْبَيِّنَةَ عَلَى سُكُوتِهَا ثَبَتَ النِّكَاحُ لِأَنَّهُ نَوَّرَ دَعْوَاهُ بِالْحُجَّةِ او که خاوند بینه قائم کړل په سکوت دَ ښځي باندې نو نکاح به ثابت شي ،ځکه چي دهٔ خپله دعوی په حجت سره روښانه کړه وَإِنْ لَمْ تَكُنْ لَهُ بَيِّنَةٌ فَلَا يَمِينَ عَلَيْهَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه‌الله (¹) او که دَ خاوند سره بینه نه وو نو په ښځه یمین نشته په نزد دَ امام ابوحنیفه‌رحمه‌الله ، وَهِيَ مَسْأَلَةُ الِاسْتِحْلَافِ فِي الْأَشْيَاءِ السِّتَّةِ وَسَتَأْتِيكَ فِي الدَّعْوَى إِنْ شَاءَ اللَّهُ تَعَالَى او دا په شپږو څیزو نو کي دَ استحلاف مسئله ده کوم چي به په کتاب الدعوی کي راشی انشاء الله تعالی .

**تشریح:-** په دې مسئله کي که زوج د ښځي په سکوت باندې بینه پیش کړل.نو نکاح به ثابت وی .ځکه چي مدعی خپله دعوی په حجت باندې منوره کړه.او که دده سره ګواهان نه وی .نود امام صاحب‌رحمه‌الله په نیز به په ښځه باندې یمین(قسم) نه راځی .اودا هم دهغه څیزونو څنې یو دې.په کوم کي چي په مدعی علیه باندې د امام صاحب‌رحمه‌الله په نیز یمین نه راځی .اود نورو حضراتو په نیز راځی .کوم چي ما د تمهید په طور ذکرکړې دی .والله اعلم بالصواب

فائده* د فریقینو دلائلو نه روسته د مدعی او مدعی علیه تعریف او ددوی حکم په ذهن کي کینوئ. مدعی هغه کس ته وائی .دچا قول چي د اصل خلاف وی .او مدعا علیه هغه کس ته وائی .دچا قول چي د اصل موافق وی .د حدیث د بیان مطابق په مدعی باندې بینه(ګواهان) واجبیږی .که د مدعی سره بینه نه وی .نو بیا به د مدعی علیه قول ،مع الیمین، معتبر وی .البته شپږ شیان (څیزونه ) داسې دی .چه په هغې کي د امام ابوحنیفه‌رحمه‌الله په نیز مدعی علیه باندې یمین نه راځی .اود صاحبین،امام شافعی ،امام مالك،اود امام احمدرحمه‌الله په نیز د مدعی علیه نه قسم اخستلې شي .هغه شپږ شیان (څیزونه ) دا دی . ① نکاح ② رجعت ③ فی فی الایلاء ④ استیلاء ⑤ رق ⑥ ولاء.

### حق د ولایت به چاته وی.او په چا به وی؟

¹) القول الراجح هو قول الصاحبين رحمهما الله كذا فى فتح القدير(١٧٢\٣) وردالمحتار(٣٢٩\٢) والبحرالرائق (٢٠٦\٣) نقلاً عن القول الراجح (٢٥٥\١)-

وَيَجُوزُ نِكَاحُ الصَّغِيرِ وَالصَّغِيرَةِ إِذَا زَوَّجَهُمَا الْوَلِيُّ او جائز دي دَ وړوكى هلك او وړې جينى نكاح هر كله چې كړې وى دَ دوى ولى بِكْرًا كَانَتِ الصَّغِيرَةُ أَوْ ثَيِّبًا وَالْوَلِيُّ هُوَ الْعَصَبَةُ دا صغيره بكره وى او كه ثيبه وى او ولى عصبه وى . وَمَالِكٌ رحمه الله يُخَالِفُنَا فِي غَيْرِ الْأَبِ وَالشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللَّهُ فِي غَيْرِ الْأَبِ وَالْجَدِّ او امام مالك رحمه الله زموږ خلاف دي دَ پلار نه په علاوه كي او امام شافعي رحمه الله دَ پلار نيكه نه په علاوه كي وَفِي الثَّيِّبِ الصَّغِيرَةِ أَيْضًا او په ثيبه صغيره كي هم،

**حل اللغة:** ① تتوفر: پوره كيږى ② القرابة: خپلولى ③ النظر: شفقت خيګړه ④ تدارك: رالاندې كول، كمې پوره كول ⑤ القصور: كوتاهى ⑥ حدوث: نوې پيدا كيدل ⑦ ممارسة: تجربه ⑧ الابعد: لرې ⑨ محجوب: پرده كړې شوې، پرده كړې شوې، يعنى په ميراث كي د بل وارث په وجه د ميراث نه محرومه شوې وى ]

**تشريح:-** دلته يوه دا مسئله بيانوى چې د ولايت حق به چا ته وى ؟ نوزموږ په نيز به هر ولى ته د ولايت حق حاصل وى .پلار نيكه وى .او كه ددوى نه علاوه وى . اود امام مالك رحمه الله په نيز د ولايت حق صرف پلار ته حاصل وى .اود امام شافعي رحمه الله په نيز به پلار اونيكه ته حاصل وى .

دويمه مسئله په دې مقام كي دا ده چې د ولايت حق به په چا وى ؟ نو په دې اړه كي د احنافو رحمهم الله مذهب دادې.چه د ولايت حق به په صغيره باندې وى .صغيره كه باكره وى .او كه ثيبه وى .اود شوافعو رحمهم الله مذهب دادې.چه ولايت به په باكره باندې وى .كه صغيره وى .او كه بالغه وى .حاصل داچه د احنافو رحمهم الله په نيز سبب د ولايت ،صغر، دې.اود شوافعو رحمهم الله په نيز ، بكر، دې.اوس څلور صورتونه پيدا شو.دوې [دوه] متفق عليه،او دوې [دوه] مختلف فيه.په متفق عليه كي يو صورت دې باكره صغيره،او دوهم ثيبه بالغه ده.په رومبى صورت كي د احنافو او شوافعو رحمهم الله دواړو په نيز به د ولايت حق حاصل وى .او په دوهم صورت كي به د دواړو په نيز د ولايت حق حاصل نه وى .د مختلف فيه يو صورت دې.باكره بالغه،او دوهم صورت ثيبه صغيره ده.په رومبى صورت يعنى په باكره بالغه باندې به د شوافعو رحمهم الله په نيز د ولايت حق حاصل وى .د احنافو رحمهم الله په نيز به حاصل نه وى .او په دوهم صورت يعنى په ثيبه صغيره باندې به د احنافو رحمهم الله په نيز ولايت حاصل وى .خود شوافعو رحمهم الله په نيز به حاصل نه وى .

وَجْهُ قَوْلِ مَالِكٍ أَنَّ الْوِلَايَةَ عَلَى الْحُرَّةِ بِاعْتِبَارِ الْحَاجَةِ وَلَا حَاجَةَ هُنَا لِانْعِدَامِ الشَّهْوَةِ دَ امام مالك رحمه الله دَ قول وجه دا ده چې ولايت په حره باند دَ حاجت په اعتبار سره دې او دلته هيڅ حاجت نشته دَ نيشتو والى دَ شهوت په وجه إِلَّا أَنَّ وِلَايَةَ الْأَبِ ثَبَتَتْ نَصًّا بِخِلَافِ الْقِيَاسِ وَالْجَدُّ لَيْسَ فِي مَعْنَاهُ فَلَا يُلْحَقُ بِهِ مګر دا چې دَ پلار ولايت په نص سره ثابت دې خلاف قياس،او دا دَ پلار په معنى كي نه دې په دې وجه دَ پلار سره لاحق كيداې نه شى

**تشريح:-** په اوله مسئله كي د امام مالك رحمه الله دليل دادې.چه په آزاد باندې ولايت د حاجت په وجه وى .او په صغير او صغيره كي د شهوت معدوم كيدلو په وجه هيڅ حاجت نشته.نو په دوى به ولايت هم حاصل نه وى .

خو سوال دادې.چه امام مالك رحمه الله پلار ته د ولايت حق ولې وركوى ؟

ځواب: پلار د پاره د ولايت حق خلاف قياس د نص نه ثابت دې.څكه چې حضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه دخپلې شپږ كلنې لور نكاح د نبى اكرم ﷺ سره اوكړه.او نبى كريم ﷺ دا صحيح اوګرځوله.په دې وجه پلار ته د ولايت حق وركړې شو.او چونكه نيكه د پلار په معنى كي نه وى .څكه چې په نيكه كي د پلار په مقابله كي شفقت كم وى .په دې وجه به پلار سره نيكه نشى لاحق كولې.

قُلْنَا: لَا بَلْ هُوَ مُوَافِقٌ لِلْقِيَاسِ موږ وايو چې نا بلكه دَ قياس موافق دي لِأَنَّ النِّكَاحَ يَتَضَمَّنُ الْمَصَالِحَ وَلَا تَتَوَفَّرُ إِلَّا بَيْنَ الْمُتَكَافِئَيْنِ عَادَةً څكه چې نكاح دَ ډيرو مصلحتونو متضمن وى كوم چې په پوره طور سره نه شى حاصليدې مګر دَ دوو همسرو په مابين كي عادةً وَلَا يَتَّفِقُ الْكُفْءُ فِي كُلِّ زَمَانٍ فَأَثْبَتْنَا الْوِلَايَةَ





فِي حَالَةِ الصِّغَرِ إِحْرَازًا لِلْكُفْءِ اونه ميسر كيږى كفو په هروخت كي نو موږ ولايت ثابت كړو په حالت دَ صغر كي كفولره دَ محفوظ كاوه دَ پاره.

**تشريح:-** زموږ د اړخه ددې ځواب دادې.چه د ولايت ثبوت خلاف قياس نه دې.بلكه د قياس بالكل مطابق دې.څكه چې نكاح متضمن وى .څه مصلحتونو ته.مثلاً تناسل، ازدواج، قضاء شهوت وغيره.او دا مصلحتونه د هغه دوې [دوه] كسانو په مينځ كي حاصليدلې شى .چه په دوى كي هر يو د بل كفو وى .او د كفو په هره زمانه كي ملاويدل ضرورى نه دى .په دې وجه موږ د ماشوموالى په زمانه كي ولايت ثابت كړو.چه كفو محفوظ پاتې شى .څكه كه د بالغ كيدلو انتظار اوكړې شى .نو داكفو فوت كيدلې هم شى .

وَجْهُ قَوْلِ الشَّافِعِيِّ أَنَّ النَّظَرَ لَا يَتِمُّ بِالتَّفْوِيضِ غَيْرِ الْأَبِ وَالْجَدِّ امام شافعي رحمه الله دَ قول وجه دا ده چې شفقت كامل نه وى دَ پلار نيكه نه غير په سپارلو سره، لِقُصُورِ شَفَقَتِهِ وَبُعْدِ قَرَابَتِهِ وَلِهَذَا لَا يَمْلِكُ التَّصَرُّفَ فِي الْمَالِ مَعَ أَنَّهُ أَدْنَى رُتْبَةً دَ غير دَ شفقت ناقص كيدو او لرې والى دَ قرابت په وجه،په دې وجه نه مالك كيږى په مال كي دَ تصرف،سره دَ دې چې مال په مرتبه كي ادنى دي فَلَأَنْ لَا يَمْلِكَ التَّصَرُّفَ فِي النَّفْسِ وَأَنَّهُ أَعْلَى أَوْلَى دَ نو نفس چې په مرتبه كي اعلى دي په دې كي به دَ تصرف مالك په درجه اولى نه وى ،

**تشريح:-** په اوله مسئله كي د امام شافعي رحمه الله د دليل حاصل دادې.چه د ولايت دارومدار په شفقت باندې دې.اود پلار او نيكه نه علاوه بل اړخ ته د ولايت حق سپارلو سره شفقت كامل نه وى .څكه چې د پلار او نيكه نه علاوه كي د شفقت نقصان هم دې.اود قرابت لرې والې هم دې.هم دا وجه ده.چه پلار اونيكه ته د صغيره په مال كي د تصرف اختيار نشته.سره ددې چې مال په مرتبه كي كم تر دې.نوبيا نص چې په مرتبه كي هم اعلى او ارفع دې.په دې كي به د تصرف اختيار د پلار اونيكه نه علاوه ته په درجه اولى نه دى كيدل پكار.

وَلَنَا أَنَّ الْقَرَابَةَ دَاعِيَةٌ إِلَى النَّظَرِ كَمَا فِي الْأَبِ وَالْجَدِّ او زموږ دليل دا دي چې قرابت دَ شفقت اړخ ته داعى دې لكه چې په پلار نيكه كي دې وَمَا فِيهِ مِنَ الْقُصُورِ أَظْهَرْنَاهُ فِي سَلْبِ وِلَايَةِ الْإِلْزَامِ او دَ دوى په غير كي چې كوم قصور دې دَ شفقت،دَ لره موږ ظاهر كړو دَ ولايت الزام په سلب كولو،

**تشريح:-** زموږ دليل دادې.چه قرابت د شفقت سبب دې.لكه په پلار اونيكه كي چې دې.پاتې شوه داخبره چې د پلار او نيكه نه په علاوه كي شفقت كم دې.نو ددې توپير به داسې كوو.چه پلار او نيكه چې په دوى كي كامل شفقت وى .دوى ته ولايت د اجبار او ولايت د الزام د دواړوحق وركړې شو.اود پلار نيكه نه علاوه په چا كي چې شفقت كم دې.دوى لپاره ولايت د اجبار ثابت دې.خو ولايت د الزام ثابت نه دې.نو هركله چې قرابت سبب دې د شفقت.اود ولايت دارومدار په شفقت باندې دې.نوپه كوم كوم خانې كي چې شفقت بيا موندې شى .هم هلته كي به ولايت هم ثابت وى .كه پلار نيكه وى .او كه ددوى نه علاوه نورڅوك نيز دې رشته دار وى .

په ولايت اجبار او ولايت الزام كي توپير دادې.چه چاته ولايت د اجبار حاصل دې.او ولايت د الزام ثابت نه دې.نو ددوى كړې شوې نكاح به لازم نه وى .بلكه د بالغ كيدلو نه روسته به صغيرته خيار بلوغ حاصل وى . اوچاته چې د ولايت اجبار سره ولايت الزام هم حاصل دې.ددوى كړې شوې نكاح به لازم وى .د بالغ كيدلو نه روسته به خيار بلوغ حاصل نه وى .

بِخِلَافِ التَّصَرُّفِ فِي الْمَالِ فَإِنَّهُ يَتَكَرَّرُ فَلَا يُمْكِنُ تَدَارُكُ الْخَلَلِ بخلاف دَ تصرف نه په مال كي ،څكه چې دغه بار بار وى نو دَ خلد تدارك ممكن نه دې فَلَا تُفِيدُ الْوِلَايَةُ إِلَّا مُلْزِمَةً وَمَعَ الْقُصُورِ لَا تَثْبُتُ وِلَايَةُ الْإِلْزَامِ نو مفيد به نه وى ولايت مګر ملزمه او دَ قصور دَ شفقت سره ولايت دَ الزام نه ثابتيږى ،

**تشريح:-** د امام شافعي رحمه الله قياس، چه د پلار نيكه نه علاوه ته د صغير په مال كي د تصرف اختيار نشته.ددي خواب دادي.چه په مال كي تصرف مكرر وى .چه ولي ئې يو ته خرڅ كړى .نو هغه ئې دوهم ته خرڅ كړى .او دوهم ئې دريم ته خرڅ كړى .د صغير د بالغ كيدلو نه روسته نه معلوم،چه د كوم خائي څخه به كوم خائي ته رسيدلې وى .نوكه د پلار نيكه نه علاوه بل چا د صغير په مال كي تصرف اوكړو.نود فعل تدارك (رالاندې كول) به ممكن نه وى .په دې وجه په ،تصرف فى المال،كي ولايت د الزام مفيد كيدلې شى .اود پلار نيكه نه علاوه ته ولايت د الزام حاصل نه وى .نود پلار نيكه نه علاوه ته به په مال كي د تصرف حق هم نه وى .

**وَجْهُ قَوْلِهِ فِي الْمَسْأَلَةِ الثَّانِيَةِ أَنَّ الثِّيَابَةَ سَبَبٌ لِحُدُوثِ الرَّأْيِ لِوُجُودِ الْمُمَارَسَةِ** په دويمه مسئله كي دَ امام شافعي رحمه الله دَ قول وجه دا ده چې ثيبه كيدل دَ حدوث دَ رائ سبب دې دَ ممارست موندو په وجه سره **فَأَدَرْنَا الْحُكْمَ عَلَيْهَا تَيْسِيرًا** نو موږ حكم دائر كړو په ثيابت دَ پاره دَ آسانى .

**تشريح:-** دويمه مسئله چې د ولايت حق به په چا وى ؟ په دې كي د امام شافعي رحمه الله دليل دادې.چه ثيبه كيدل د رائې پيداكيدلو سبب دې.خكه چې محارست موجود شو.نو هركله چې ثيبه ذى رائې شوه.او خپل نفع نقصان باندې پوهيږى .نو په دې باندې ولايت ته هيڅ اړتيا نشته.دا اختيار منده ده.نو په ثيبه كيدلو باندې د آسانتيا لپاره حكم اولګولې شو.

**وَلَنَا مَا ذَكَرْنَا مِنْ تَحَقُّقِ الْحَاجَةِ وَوُفُورِ الشَّفَقَةِ** او زموږ دَ ليل هغه دې كوم چې موږ بيان كړو . يعنى تحقق دَ حاجت او كمال شفقت، **وَلَا مُمَارَسَةَ تُحْدِثُ الرَّأْيَ بِدُونِ الشَّهْوَةِ فَيُدَارُ الْحُكْمُ عَلَى الصِّغَرِ** او هيڅ ممارست نشته چې رائ پيدا كړى بغير دَ شهوت نه نو حكم به دائر كولاى شى په صغر باندې

**تشريح:-** زموږ دليل دادې.چه په صغير او صغيره كي حاجت هم متحقق دې.او په پلار نيكه كي شفقت هم كامل دې.او پاتې شوه داخبره چې ممارست (تجربه) رائې پيدا كوى .موږ وايو.چه بغير د شهوت نه ممارست هم نه پيدا كوى .بغيرد شهوت نه جماع كول،او په ديوال كي ډغره وهل برابر دى .نوحكم به په صغيره باندې دائر كولې شى .نو هركله چې صغر موجود شى .نو ولايت به ثابت وى .

**ثُمَّ الَّذِي يُؤَيِّدُ كَلَامَنَا فِيمَا تَقَدَّمَ قَوْلُهُ عَلَيْهِ السَّلَامُ** بيا هغه چې زموږ دَ كلام تائيد كوى په ماقبل كي دَ حضور ﷺ ارشاد دې، **النِّكَاحُ إِلَى الْعَصَبَاتِ مِنْ غَيْرِ فَصْلٍ** (1)النكاح على العصبات،بغير دَ فصل نه **وَالتَّرْتِيبُ فِي الْعَصَبَاتِ فِي وِلَايَةِ النِّكَاحِ كَالتَّرْتِيبِ فِي الْإِرْثِ** او ترتيب دَ عصباتو په ولايت دَ نكاح كي داسې دې لكه ترتيب چې په وراثت كي دې **وَالْأَبْعَدُ مَحْجُوبٌ بِالْأَقْرَبِ** او ولى ابعد به محجوب وى دَ ولى اقرب په وجه

**تشريح:-** بيا د ولى په سلسله كي د ماقبل كلام تائيد ددې حديث نه هم كيږى .چه [ألنكاح إلى العصبيات] په دې حديث كي پلار نيكه او ددوى نه په علاوه كي هيڅ توپير نشته.اود نكاح د ولايت په سلسله كي به په عصباتوكي ترتيب هم هغه وى .كوم ترتيب چې په وراثت كي وى . لكه چې ،اقرب الاولياء، زوى دې.بيا نمسى دې.دغه ډول كښته ارخ ته.بيا پلار، بيا نيكه، بيا ددې نه پورته سلسله وار دى .او ولى ابعد به محروم وى .د ولى اقرب په موجودګئ كي به ولى ابعد ته د ولايت حق نشى وركولې.والله اعلم بالصواب

## د پلار نيكه په نكاح باندې د خيار بلوغ حكم

1) قال الزيلعى فى نصب الراية بعد ذكرقول صاحب الهداية لقوله عليه السلام النكاح إلى الصعبات ) قلت وسقط بقية قوله بعد قلت( نصب الراية ٣/٢٤٤) وقال الحافظ فى الدراية بعد ذكرهذا الحديث لم أجده (٦٢/١) يقول العبد الضعيف ذكرهذا الحديث صاحب فتح القدير،والبحرالرائق والمبسوط فى كتبهم) ـ



**فَإِنْ زَوَّجَهُمَا الْأَبُ وَالْجَدُّ** **يَعْنِي الصَّغِيرَ وَالصَّغِيرَةَ** نو كه نكاح او كړو دَ دې دواړو پلار يا نيكه، **فَلَا خِيَارَ لَهُمَا بَعْدَ بُلُوغِهِمَا** يعنى دَ صغير او صغيرې،نو نه به وى خيار دوى لره دَ بلوغ دَ دواړو نه ،

**حل اللغة:** ① **الجد:** نيكه ② **وافر:** كامل،پوره ③ **مباشرة:** ګډون]

**تشريح:-** په دې عبارت كي په ولايت اجبار باندې تفريع بيان كړې شوې ده.فرمائى .كه د صغير او صغيره نكاح پلار اوكړه.يا د پلار په غيرموجودګئ كي نيكه اوكړه.نودا نكاح به لازم وى .اود بالغ كيدلو نه روسته به صغير او صغيره ته خيار بلوغ حاصل نه وى .

**لِأَنَّهُمَا كَامِلَا الرَّأْيِ وَافِرَا الشَّفَقَةِ** ځكه چې پلار نيكه دواړه كامل الرئ او پوره شفقت والادى **فَيَلْزَمُ الْعَقْدُ بِمُبَاشَرَتِهِمَا** نو لازم به وى عقد دَ دوى په كاوه سره **كَمَا إِذَا بَاشَرَاهُ بِرِضَاهُمَا بَعْدَ الْبُلُوغِ** لكه چې لازميږى كله چې پلار دا دا كړې وى دَ په رضامندى سره روسته دَ بلوغ نه

**تشريح:-** دليل دادې.چه پلار اونيكه دواړه كامل رائې او پوره شفقت لرى .په دې وجه به د دواړو شوې نكاح لازم وى .لكه څنګه چې د بالغ كيدلو نه روسته پلار يا نيكه ددې دواړو په رضامندئ سره نكاح اوكړه.نودا نكاح به لازم وى .

## د پلار نيكه نه علاوه د بل كس په نكاح د خياربلوغ حكم

**وَإِنْ زَوَّجَهُمَا غَيْرُ الْأَبِ وَالْجَدِّ فَلِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا الْخِيَارُ إِذَا بَلَغَ** اوكه نكاح اوكړو دَ صغير او صغيرې دَ پلار نيكه نه علاوه بل چا نو هريو لره دَ دې دواړو نه خيار دې هر كله چې بالغ شى **إِنْ شَاءَ أَقَامَ عَلَى النِّكَاحِ وَإِنْ شَاءَ فَسَخَ** كه غواړى نو په نكاح دې قائم پاتې شى او كه غواړى فسخ دې كړى ،**وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ رَحِمَهُمَا اللَّهُ**(1) دا دَ طرفينو رحمهما الله په نزد دى

**حل اللغة:** ① **التدارك** كمي پوره كول ② **الجواب**:حكم ③ **خفى**: پټ ④ **جلى**:ښكاره ⑤ **الخلل**: ركاوټ ⑥ **القضاء**: فيصله ]

**تشريح:-** په دې عبارت كي په ولايت اجبار باندې تفريع بيان شوې ده.مسئله داده.كه د صغير او صغيره نكاح د پلار نيكه نه علاوه بل چا اوكړه.نود بالغ كيدلو نه روسته به په صغيرينوكي هر يوته د خيار بلوغ په وجه د نكاح پاته پاتې كيدلو اود فسخ كاوه اختيار وى .دا حكم د طرفينو رحمهما الله په نيز دى

**وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ لَا خِيَارَ لَهُمَا اعْتِبَارًا بِالْأَبِ وَالْجَدِّ** او امام ابويوسف[رحمه الله] فرمائى چې دې دواړو لره خيار نشته،قياس په پلار نيكه باندې،

**تشريح:-** امام ابويوسف رحمه الله فرمائى .چه صغيرينو ته به خيار بلوغ حاصل نه وى .امام ابويوسف رحمه الله غيراب او غيرجد قياس كوى په اب او جد باندې.يعنى لكه څنګه چې د پلار نيكه كړې شوې نكاح لازم وى .د بالغ كيدلو نه روسته دانشى فسخ كولې.دغه ډول د غيراب اود غيرجد تړلې شوې نكاح به هم لازم وى .د بالغ كيدلو نه روسته به صغيرينو ته د فسخ كاوه اختيار نه وى .د مقيس او مقيس عليه په مينځ كي جامع قرابت دې.حاصل داچه دابويوسف رحمه الله په نيز د پلار نيكه په شان غير پلار اوغيرنيكه ته به هم، ولايت اجبار سره ولايت الزام حاصل وى .

1) القول الراجح هو قول الطرفين رحمهما الله كذا فى ردالمحتار(٢\٣٣١) والعناية على هامش (٣\١٧٥) والبحرالرائق (٣\٢١٢) والهندية (١\٢٨٦) نقلاً عن القول الراجح (١\٢٥٧)-

وَلَهُمَا أَنَّ قَرَابَةَ الْأَخِ نَاقِصَةٌ وَالنُّقْصَانُ يُشْعِرُ بِقُصُورِ الشَّفَقَةِ د طرفينو ﷺ دليل دا دي چي د رور قرابت ناقص دي او نقصان د قرابت مشعر د قصور د شفقت دي فَيَتَطَرَّقُ الْخَلَلُ إِلَى الْمَقَاصِدِ عَسَى وَالتَّدَارُكُ مُمْكِنٌ بِخِيَارِ الْإِدْرَاكِ نو په مقاصدو کي خلل راتلی شي ي، او تدارك چې دي ممکن دي په خيار بلوغ سره. وَإِطْلَاقُ الْجَوَابِ فِي غَيْرِ الْأَبِ وَالْجَدِّ يَتَنَاوَلُ الْأُمَّ وَالْقَاضِيَ او د پلار دا دا نه په علاوه کي د خواب مطلق والي گډ دي مور او قاضی ته هُوَ الصَّحِيحُ مِنَ الرِّوَايَةِ لِقُصُورِ الرَّأْيِ فِي أَحَدِهِمَا او دا صحيح دي د روايت نه، د رایٔ ناقص کيدو په يو د دوي کي وجه په دوی کي په يو کي وَنُقْصَانِ الشَّفَقَةِ فِي الْآخَرِ او د شفقت کميدو نه په بل کي فَيَتَخَيَّرُونَ اختيار به ور کولي شي

تشریح:- د طرفينو ﷺ دليل دادي.چه د پلار نيکه نه علاوه، مثلاً د ورور قرابت د پلار نيکه د قرابت نه ناقص دي.او نقصان د قرابت، د شفقت د نقصان دليل دي.نود شفقت د نقصان په وجه دپلار نيکه نه علاوه د نورو ترلي شوي نکاح کي خلل واقع کيدل ممکن دی .اود شفقت د نقصان په وجه د نکاح په مقاصدو کي چې د خلل کوم امکان پيدا شوي دي.د خيار بلوغ په ذريعه ددي تلافي هم ممکن ده. نو ددي خلل د لري کاوه لپاره به صغيرينو ته خيار بلوغ حاصل وی .اود پلار نيکه ترلي شوي نکاح به لازم نه وی .حاصل داچه د طرفينو ﷺ په نيز غيراب او غيرجد ته ولايت اجبار حاصل دي.خو ولايت الزام حاصل نه دي.

مور اوقاضی لپاره ولايت اجبار ۞[واطلاق الجواب...إلخ] ددي منشاء داده.چه د حکم اطلاق د پلار نيکه نه په علاوه کي مور او قاضی هم گډ دي.مطلب دادي.چه مور اوقاضی ته هم ولايت اجبار حاصل دي.ولايت الزام حاصل نه دي.نو ددوی کړي شوي نکاح به هم لازم نه وی .بلکه د بالغ کيدلو نه روسته به صغيرينو ته د خيار بلوغ لاندي د فسخ کاوه حق حاصل وی .صحيح روايت هم دادي.اگرچه د ابوحنيفه رحمه الله نه يو روايت دادي.که قاضی د يتيمي نکاح اوکړه.نو دي ته به خيار بلوغ حاصل نه وی .بلکه نکاح به لازم وی .او وجه داده.چه د قاضی لپاره په مال اونفس دواړوکي ولايت تامه ثابت دي.نود قاضی ولايت به په قوت کي د پلار نيکه د ولايت برابر وی .

۞ د صحيح روايت دليل دادي.چه د ولايت الزام لپاره دوي [دوه] شيان (څيزونه ) ضروری دی .کمال رائي، اوکمال شفقت.که دا دواړه شيان (څيزونه ) موجود شو.نو ولايت الزام به حاصل وی .او که په دي دواړوکي يوڅيز موجودشو.نوصرف ولايت اجبار به حاصل وی .ولايت الزام به حاصل نه وی .دلته کي هم دغه خبره ده.څکه چې په موركي کامل شفقت دي.کامله رائي نشته.او په قاضی کي کمال رائي شته.خو کمال شفقت نشته.نودي دواړوته به ولايت اجبارحاصل وی .خو ولايت الزام به حاصل نه وی .نوددي دواړو ترلي شوي نکاح به لازم نه وی .او صغيرينو ته به د فسخ کاوه اختيار وی .

**حکم تفريق به سبب خيار بلوغ .**

قَالَ وَيُشْتَرَطُ فِيهِ الْقَضَاءُ او شرط ده په خيار بلوغ کي قضاء د قاضی بِخِلَافِ خِيَارِ الْعِتْقِ لِأَنَّ الْفَسْخَ هَاهُنَا لِدَفْعِ ضَرَرٍ خَفِيٍّ وَهُوَ تَمَكُّنُ الْخَلَلِ په خلاف د خيار عتق نه، څکه چې فسخ دلته ،د ضرر خفی د لري کاوه د پاره دي او دغه د خلل په ځائ پاتي کيدل دی وَلِهَذَا يَشْمَلُ الذَّكَرَ وَالْأُنْثَى فَجُعِلَ إِلْزَامًا فِي حَقِّ الْآخَرِ په دي وجه دا سړي او ښځي دواړو لره گډ دي،نو د بل په حق کي الزام اومنلي شو فَيَفْتَقِرُ إِلَى الْقَضَاءِ وَخِيَارُ الْعِتْقِ لِدَفْعِ ضَرَرٍ جَلِيٍّ وَهُوَ زِيَادَةُ الْمِلْكِ عَلَيْهَا نو د قضاء محتاج به وی ،او خيار عتق د ښکاره ضرر لري کاوه د پاره دي او دغه په معتقه باند د ملك زياتول دي وَلِهَذَا يَخْتَصُّ بِالْأُنْثَى فَاعْتُبِرَ دَفْعًا وَالدَّفْعُ لَا يَفْتَقِرُ إِلَى الْقَضَاءِ نو په دي وجه دا د مونث سره مخصوص دي نو دي لره دفع او منلي شو او دفع محتاجه د قضاء نه وی .

تشریح:- علامه مرغينانی رحمه الله فرمائی .چه دخيار بلوغ په وجه که نکاح فسخ کړي شوه.نو په دي کي قضاء د قاضی شرط ده.يعنی په صغيرينوكي به د يو کس،فسخت، ونيل کافی نه وی .بلکه د قاضی په عدالت کي



به مقدمه پيش کوی .بيا به قاضی د نکاح د فسخ حکم ورکوی .په خلاف د خيار عتق،چه په دي کي معتقه پخپله نکاح فسخ کولي شی .د قاضی د قضاء اړتيا نشته.د توپير د وجه نه مخکي دا په ذهن کي کينوئ.چه د خپل خان نه د ضرر لري کاوه لپاره د قاضی فيصله شرط نه ده.البته په بل باندي د الزام لگولو لپاره د قاضی قضاء شرط ده.څکه چې الزام د قاضی منصب دي.د عامو خلگو نه دي.

د نکاح د فسخ لپاره د قاضی شرط۞اوس وجه د توپير واورئ. په خياربلوغ کي د نکاح فسخ کول د خفی ضرر دفع کاوه لپاره دی .او هغه خلل متمکن کيدل دی .هم دا وجه ده.چه خياربلوغ مذکر اومونث دواړو ته گډ دي.او هرکله چې دا دخفی ضرردفع کول دی .نودا به د،الزام علی الغير، په حکم کي جوړولي شی .يعنی کوم کس چې د نکاح فسخ کاوه اراده اوکړه.گويا دي په بل باندي څوك چې ولی جوړشوي،او نکاح ني کړي وه.الزام لگوی . چې زما نکاح دي په مناسب ځائي کي نه ده کړي.او هرکله چې دا دفع د الزام ده.او الزام د قاضی منصب دي.نود خياربلوغ په وجه فسخ کول به دقاضی د قضاء سره مشروط کولي شی .

۞او خيارعتق چې دي.نودا د ضرر جلی دفع کاوه لپاره وی .څکه چې وينځه د کومي پوري آزاده نه وه. دهغه وخته پوري ددي خاوند د دوي [دوه] طلاقو مالك وو.او هرکله چې آزاده شوه.نواوس د دري طلاقو مالك شو.نو گويا په معتقه باندي د آزادئ په وجه په ملك کي اضافه اوشوه.او چونکه د ملك زياتوالي به په وينځه باندي وی .په غلام باندي به نه وی .په دي وجه خيار عتق د وينځي سره خاص دي.غلام ته به خيارعتق حاصل نه وی .

۞او هرکله چې د خيارعتق په وجه فسخ کولوکي صرف ضرر دفع کول دی .د الزام په معنی کي بالکل نه دي.نو په خيار عتق کي به د نکاح فسخ کول،قضاء د قاضی ته محتاج هم نه وی .والله اعلم بالصواب

**په بالغ کيدلو باندي په نکاح خاموشی**

ثُمَّ عِنْدَهُمَا إِذَا بَلَغَتِ الصَّغِيرَةُ وَقَدْ عَلِمَتْ بِالنِّكَاحِ فَسَكَتَتْ فَهُوَ رِضًا بيا د طرفينو ﷺ په نزد هر کله چې صغيره بالغه شوه او د نکاح نه خبره شوه.بيا هم خاموشه شوه نو دارضا ده وَإِنْ لَمْ تَعْلَمْ بِالنِّكَاحِ فَلَهَا الْخِيَارُ حَتَّى تَعْلَمَ فَتَسْكُتَ او که د نکاح نه واقفه نه وی نو دي لره به خيار وی تر هغي چې واقفه شی بيا خاموشه شی . شَرَطَ الْعِلْمَ بِأَصْلِ النِّكَاحِ لِأَنَّهَا لَا تَتَمَكَّنُ مِنَ التَّصَرُّفِ إِلَّا بِهِ د اصل نکاح د علم شرط څکه او لگولي شو چې دغه په تصرف قادره نه ده مگر په وجه د علم په نکاح سره. وَالْوَلِيُّ يَنْفَرِدُ بِهِ فَعُذِرَتْ بِالْجَهْلِ او ولی يواځې نکاح کولای شی نو د جهل په وجه سره صغيره معذوره کړي شوه

حل اللغة: ① يتفرد:ځانله کيږی ،مستقل کيږی ② تتفرغ:فارغيږی ،اوزگاريږی ]

تشریح:- د طرفينو ﷺ په نيز د ماقبل په مسئله کي تفريع ده.صورت دادي.چه صغيره ته د مخکي نه دا علم وو.چه د فلانی سره زما نکاح شوي ده.اوس د بالغ کيدلو نه روسته دي صغيره چوپوالي اختيار کړه.نودا چوپوالي به ددي دارخه رضامندی وی .او که د مخکي نه د اصل نکاح علم نه وی .او هم په دي مهال کي بالغه شی .نو دي ته به د هغه وخته پوري خيارحاصل وی .کله چې داصل نکاح علم اوشی .اود علم حاصليدلو نه روسته که سکوت اخيار کړی .نو رضامندی به شمارلي شی .

۞حاصل داچه طرفينو ﷺ د اصل نکاح نه خبريدل شرط لگولي دي.څکه چې ولی د صغيره سره د مشوره کاوه نه بغير په ځانله باندي نکاح کولي شی .او صغيره به د خياربلوغ په وجه هغه وخته پوري په تصرف باندي قدرت لری .چه دي ته معلومه شی .چه زما نکاح شوي ده.ددي نه بغير دخيار په تصرف باندي قدرت نشی لرلي.څکه چې د اصل نکاح نه د جهالت په صورت کي دا معذوره گرخولي شوي ده.او ونيلي شوی دی .چه کله هم د اصل نکاح علم اوشی .خياربلوغ به حاصل وی .

وَلَمْ يُشْتَرَطِ الْعِلْمُ بِالْخِيَارِ لِأَنَّهَا تَتَفَرَّغُ لِمَعْرِفَةِ أَحْكَامِ الشَّرْعِ او دَ علم بالخيار شرط ئې ځکه او نه لګاو چې دغه په احکامو دَ شرع دَ پوهیدو دَ پاره ځان فارغولې شی ، وَالدَّارُ دَارُ الْعِلْمِ فَلَمْ تُعْذَرْ بِالْجَهْلِ او دا رالاسلام ارالعلم دې،نو دَ جهل بالخيار په وجه به معذوره نه وی ، بِخِلَافِ الْمُعْتَقَةِ لِأَنَّ الْأَمَةَ لَا تَتَفَرَّغُ لِمَعْرِفَتِهَا فَتُعْذَرُ بِالْجَهْلِ بِثُبُوتِ الْخِيَارِ په خلاف دَ معتقې نه جه دَغه دَ معرفت دَ احکامودَ پاره فارغه نه ده په دې وجه دغه دَجهل په ثبوت دَ خيار په وجه معذوره مقرر شوه

تشریح:- د ،علم بالنکاح، شرط ئې لګولې دې.خود ،علم بالخيار، شرط ئې نه دې لګولې.تفصیل دادې.چه صغیره ته خودا معلومه ده.چه زما نکاح شوې ده.خودا معلومه نه ده.چه د بالغ کیدلو نه روسته شریعت ماته د خیاربلوغ حق راکړې دې.یعنی دا مسئله معلومه نه ده.اوس که په داسې صورت کې د بالغ کیدلو نه روسته خاموشه پاتې شی .نو نکاح به لازم وی .حالانکه دې ته د خیاربلوغ علم نشته.دلیل دادې.که دارالاسلام،دارالعلم دې.د لوستلو او زده کړې موقع هم شته.د آزاد کیدلو په وجه دا صغیره هم د شریعت په احکامو د پوهیدلو او زده کاوه لپاره فارغ وه.نو ددې جهل به معتبر نه وی .او مونږ به دا معذوره نه ګڼو.ددې په خلاف معتقه ده.چه د آزادیدلو نه روسته دې ته دا مسئله معلومه نه ده.چه ماته د خیارعتق په وجه د نکاح فسخ کولوحق دې.نود آزاد کیدلونه روسته به د معتقه سکوت رضامندی نه وی .بلکه د معلومیدلو پورې به خیارعتق پاته وی .وجه داده.چه وینځې د مولا په خدمت کې د مشغولیدلو په وجه د شریعت د احکامو زده کاوه لپاره خپل وخت فارغ کولې نشو.په دې وجه به وینځه دخیارعتق نه د ناپوهتیا په وجه معذوره ګنړلې شی .

## په سکوت دخيار په باطليدلوکې د باکره انجلۍ او هلك په حکم کې فرق

ثُمَّ خِيَارُ الْبِكْرِ يَبْطُلُ بِالسُّكُوتِ ، وَلَا يَبْطُلُ خِيَارُ الْغُلَامِ مَا لَمْ يَقُلْ رَضِيتُ بیا دَ باکرې خیار باطلیږی په سکوت سره او نۀ باطلیږی خیار دَ هلك تر څو پورې چې اونه فرمائی زۀ راضی یم أَوْ يَجِيْءُ مِنْهُ مَا يُعْلَمُ أَنَّهُ رِضًا یا دَ دۀ دَ اړخ نه داسې څه اوشی چې معلومه شی چې دې رضادې. وَكَذٰلِكَ الْجَارِيَةُ إِذَا دَخَلَ بِهَا الزَّوْجُ قَبْلَ الْبُلُوغِ اعْتِبَارًا لِهٰذِهِ الْحَالَةِ بِحَالَةِ ابْتِدَاءِ النِّكَاحِ دا رنګ وینځه ده چې کله ورسره دخول اوکړی خاوند مخکې دَ بلوغ نه، قیاس دَ دې حال په حال دَ ابتداء دَ نکاح باندې.

حل اللغة: ① خیار: اختیار ② الاعتاق: آزاددول ③ سکوت: چپوالې ④ المخيرة: هغه ښځه چاته چې اختیار ورکړې شوې وی ⑤ خلل: رکاوټ]

تشریح:- په دې عبارت کې چې خیاربلوغ،کوم چې مذکر اومؤنث دواړو ته ګډ دې.په دې تفریع ده.تقریر دا دې.چه د باکره خیاربلوغ په سکوت سره باطلیږی .اود هلك خیاربلوغ په سکوت سره نه باطلیږی .بلکه صراحتاً به [رضیت] وائی .یعنی چه ،زه راضی یم،یا څه داسې علامت اوموندې شی .چه په رضامندۍ باندې دلالت کوی .مثلاً په بالغ کیدلو باندې ښځې له مهر اولیګی .یا دوستانو ته دعوتونه وغیره پیل کړی .یا د ښځې سره جماع اوکړی .په دې ټولو څیزونو سره رضامندی موجود کیږی .نوخیاربلوغ به ساقطیږی .دغه ډول ،جاریه ثیبه، ده.چه ددې خاوند د بالغ کیدلو نه مخکې جماع اوکړه.نو ددې په حق کې هم سکوت کافی نه دې.بلکه صراحةً به د رضامندۍ اظهارکوی . یا بل څه علامت ددې داړخه اوموندې شی .چه ددې نه رضامندی معلومیږی .ددې ټولو دلیل دادې. چې دا حالت قیاس شوې دې.د نکاح په ابتدائی حالت باندې.د قیاس تفصیل دادې.چه صغیره باکره کله بالغ شوه.او ددې نه ولی د نکاح اجازت اوغوښتلو.بیا دا باکره بالغه خاموش شوه.نو ددې داسکوت به رضامندی وی .دغه ډول که د صغیره لپاره خیاربلوغ وی .او بالغه شی .او سکوت اختیار کړی .نو ددې داسکوت به رضامندی شمارلې شی .او خیاربه باطل وی .دا حالت به د نکاح په ابتدائی حالت باندې قیاس کولې شی .اود غه شان هلك، او جاریه ثیبه ده.چه کله ددوی



نه دنکاح اجازت اوغوښتلې شی .نو ددې دواړو سکوت به رضامندی نه شی شمارلې.بلکه په ژبه به د رضامندۍ اظهار کوی .یا چې څه ښکاره دلالت بیاموندې شی .هم دا حال به وی .دخیاربلوغ په وخت، ددوی سکوت به رضامندی نه وی .بلکه په ژبه به اظهار کوی .یا چې څه ښکاره دلالت اوموندلې شی .دا حالت به د نکاح په ابتدائی حالت باندې قیاس کولې شی .

وَخِيَارُ الْبُلُوغِ فِي حَقِّ الْبِكْرِ لَا يَمْتَدُّ إِلَى آخِرِ الْمَجْلِسِ او خیار دَ بلوغ دَ باکرې په حق کې ممتد کیږی نه دَ مجلس تر آخره پورې وَلَا يَبْطُلُ بِالْقِيَامِ فِي حَقِّ الثَّيِّبِ وَالْغُلَامِ لِأَنَّهُ مَا ثَبَتَ بِإِثْبَاتِ الزَّوْجِ او نه باطليږی په او دریدو سره په حق د ثیبې او غلام کې ،ځکه چې دغه نۀ دې ثابت شوې دَ خاوند په ثابتولو

تشریح:- دا عبارت دویمه تفریع ده.حاصل داچه خیاربلوغ د باکره په حق کې دمجلس اخره پورې نه ممتد کیږی .د مجلس نه مراد هغه مجلس دې.په کومه کې چې صغیره بالغ شوې وه.یعنی په کوم مجلس کې ئې چې په ړومبی خل وینه اوکتله.حالانکه د نکاح خبر مخکې معلوم شوې وو.یا مخکې بالغه شوې وه.او اوس په دې مجلس کې د نکاح خبر ملاؤشو.نو په دواړه صورتونوکې به سکوت خیاربلوغ باطلوی .اود ثیبه او هلك په حق کې خیاربلوغ په ودریدلو سره نه باطلیږی .بلکه دمجلس نه علاوه پورې هم ممتد کیږی .خاصکر د ثیبه په حق کې .دلیل دادې.چه دثیبه لپاره خیاربلوغ، د زوج په ثابتیدلو سره نه کیږی .او کوم شی چې د زوج په ثابتیدلو سره نه ثابتیږی .هغه به په مجلس باندې منحصرنه وی .ځکه چې کوم شی د تفویض د قبیلې څنې وی .هغه په مجلس باندې منحصر وی

بَلْ لِتَوَهُّمِ الْخَلَلِ بلکه دَ وهم دَ خلل په وجه فَإِنَّمَا يَبْطُلُ بِالرِّضَا غَيْرَ أَنَّ سُكُوتَ الْبِكْرِ رِضًا نو دغه به په رضا سره باطل وی مګر دَباکرې سکوت رضا ده

تشریح:- دې عبارت سره ئې داسې دلیل بیان کړې دې.چه باکره او هلك دواړوته ګډ دې.د دلیل حاصل دادې.چه خیاربلوغ په عدم رضا سره ثابتیږی .د خلل د توهم په وجه.او کوم شی چې په عدم رضا سره ثابتیږی .هغه په رضا سره باطلیږی .د منافی موجود کیدلو په وجه.خودا چې د باکره سکوت رضامندی ده.د هلك سکوت رضامندی نه ده.نود باکره خیار به صرف په سکوت سره باطل وی .اود هلك سکوت به دمجلس نه علاوه پورې پاته وی .

بِخِلَافِ خِيَارِ الْعِتْقِ لِأَنَّهُ ثَبَتَ بِإِثْبَاتِ الْمَوْلٰى وَهُوَ الْإِعْتَاقُ په خلاف دَ خيار دَ عتق نه ځکه چې دغه ثابت شوې دې دَ مالك په ثابتولو سره او دغه آزادول دی ، فَيُعْتَبَرُ فِيهِ الْمَجْلِسُ كَمَا فِي خِيَارِ الْمُخَيَّرَةِ نو په دې کې به اعتبار کولای شی دَ مجلس لکه په خيار دَ مخيره کې

تشریح:- په خلاف د خیارعتق.په دې عبارت کې په خیاربلوغ او خیارعتق کې توپیر کول غواړی . فرمائی چې خیارعتق د خیاربلوغ مخالف دې.ځکه چې خیارعتق د مولا په ثابتولو سره ثابتیږی .او هغه اعتاق دې.ځکه که مولا نه آزادولې.نود معتقه لپاره به خیارعتق نه ثابتیدلې.نو په دې کې به د مجلس اعتبار کولې شی .ځکه چې په ماقبل کې دا قاعده تیره شوې ده.چه هرهغه خیار کوم چې د بل په ثابتولو سره ثابتیږی .هغه په مجلس باندې منحصر وی .لکه څنګه چې خیار د مخیره دې.مثلاً خاوند خپلې ښځې ته اووئیل.[اختاری نفسك] نود ښځې دا اختیار به د مجلس آخره پورې پاته وی .د مجلس د ختمیدلو نه مخکې به یا نکاح فسخ کوی .یا به ئې پاته ساتی .والله اعلم بالصواب

## د خیاربلوغ په وجه د فرقت حکم

ثُمَّ الْفُرْقَةُ بِخِيَارِ الْبُلُوغِ لَيْسَتْ بِطَلَاقٍ بیا چې کوم فرقت دَ خیار بلوغ په وجه سره وی ،نه دی طلاق لِأَنَّهُ يَصِحُّ مِنَ الْأُنْثٰى وَلَا طَلَاقَ إِلَيْهَا ځکه چې دا فرقت دَ ښځې دَ جانب نه هم صحیح کیږی ،او دَ طلاقو حق ښځې ته

نشته، وَكَذَا بِخِيَارِ الْعِتْقِ لِمَا بَيَّنَّا او دغه ډول هغه چې دَ خيار عتق په وجه سره وی په هغې دليل سره چې موږ بيان كړل،

**تشريح:-** صورت د مسئلې دادې.چه دخيار بلوغ په وجه چې د دخول نه وړاندې يا روسته كوم فرقت شوې دې.دې ته طلاق نه وائی .دليل دادې.چه دخيار بلوغ په وجه فرقت د ښځې د اړخه هم صحيح كيږی .او ښځې ته د طلاق اختيار نه وی .نو كه طلاق اومنلې شی .نود ښځې د اړخه به هم طلاق وركول لازم شی .اودا غلط دې.د طلاق نه كيدلو فائده به په دوې [دوه] صورتونو كې ښكاره شی .ړومبی داچه فرقت كه د دخول نه مخكې وی .نو په خاوند باندې به نصف د مسمیٰ (مهر) واجب نه وی .كه دا طلاق وې.نو نصف مهر به واجب وې. دوهم صورت دا چې د فرقت نه روسته كه دواړو نكاح اوكړه.نو خاوند به د درې طلاقو مالك وی .كه فرقت طلاق وې.نو اوس د نكاح ثانی نه روسته به د دوې [دوه] طلاق مالك وې.او دغه ډول د خيار عتق په وجه فرقت ته طلاق نه وائی .د تيرشوی دليل په وجه.

بِخِلَافِ الْمُخَيَّرَةِ بخلاف دَ مخيرې نه لِأَنَّ الزَّوْجَ هُوَ الَّذِي مَلَّكَهَا وَهُوَ مَالِكٌ لِلطَّلَاقِ ځكه چې دې لره خاوند مالكه كړې ده او خاوند دَ طلاقو مالك دې

**تشريح:-** ددې په خلاف مخيره ده.چه د تخيير په وجه فرقت به طلاق شمارلې شی .دليل دادې.چه خپله ښځې نې د تخيير په ذريعه د طلاق مالكه جوړه كړې ده.او خاوند د طلاق مالك وو.نوګويا چې خاوند طلاق وركړې دې.ښځې نه دې وركړې.

### د خيار بلوغ په صورت كې د يوكس په وفات باندې د وراثت حكم

فَإِنْ مَاتَ أَحَدُهُمَا قَبْلَ الْبُلُوغِ وَرِثَهُ الْآخَرُ او كه په زوجينو كې يو مړشو دَ بالغيدو نه مخكې نو بل به دَ ده وارث وی وَكَذَا إِذَا مَاتَ بَعْدَ الْبُلُوغِ قَبْلَ التَّفْرِيقِ لِأَنَّ أَصْلَ الْعَقْدِ صَحِيحٌ او دغسې چې مړشو په دوی كې يو روسته د بلوغ نه مخكې دَ تفريق نه ځكه چې اصل عقد صحيح دې وَالْمِلْكُ ثَابِتٌ بِهِ وَقَدْ انْتَهَى بِالْمَوْتِ او كوم ملك (بضع) چې په دې سره ثابت شوې وه هغه انتهی ته او رسيده په مرګ سره

**تشريح:-** صورت د مسئلې دادې.چه د خيار بلوغ حاصليدلو په صورت كې كه د بلوغ نه وړاندې يا د بلوغ نه روسته د قاضی د تفريق نه وړاندې ،احد الزوجين، مړ شو.نو بل به ددې وارث وی .كه انجلی مړه شوه.هلك به وارث وی .او كه هلك مړشو.نو انجلی به وارثه وی .دليل دادې.چه اصل عقد خو صحيح دې.په دې وجه د قاضی د تفريق نه وړاندې وطی حلال ده.او په اصل عقد سره چې كوم ملك ثابت شوې وو.د مرګ په وجه هغه خپل انتهاء ته اورسيدلو.او كوم شی چې خپل انتهاء ته اورسی .هغه نه زائل كيږی .بلكه په مستحكم طور باندې ثابتيږی .هم دا وجه ده.چه د مرګ په صورت كې د زوجيت رشته به په جنت كې هم پاته وی .خود طلاق په صورت كې به مطلقه په جنت كې طلاق وركونكی خاوند ته نه ملاويږی .نو هركله چې په مرګ سره د زوجيت رشته مستحكم شوې ده.نو په خپلو كې به يو بل ته وراثت هم ملاويږی

بِخِلَافِ مُبَاشَرَةِ الْفُضُولِيِّ إِذَا مَاتَ أَحَدُ الزَّوْجَيْنِ قَبْلَ الْإِجَازَةِ .بخلاف دَ مباشرت دَ فضولی نه چې هركله په زوجينو كې يو مړشی مخكې دَ اجازت نه لِأَنَّ النِّكَاحَ ثَمَّةَ مَوْقُوفٌ فَيَبْطُلُ بِالْمَوْتِ ځكه چې نكاح په مباشرت د فضولی باندې موقوف دې نو دَ مرګ په وجه به باطليږی وَهَاهُنَا نَافِذٌ فَيَتَقَرَّرُ بِهِ او دلته نافذ دې نو دَ مرګ په وجه به متقرر او ثابت وی .

**تشريح:-** په خلاف ددې چې كوم فضولی د ښځې او سړی ،د اجازت نه بغير ددوی دواړو نكاح اوكړه.اوس د اجازت وركاوه نه مخكې ،احد الزوجين، مړشو.نو بل ته به وراثت نه ملاويږی .ځكه چې نكاح د فضولی د زوجينو په اجازت باندې موقوف ده.بود ،احد الزوجين، په مړ كيدلو باندې نكاح باطل شوه.نو وراثت به هم نه جاری كيږی .اود متن په مسئله كې نكاح نافذ ده.نو په مرګ باندې به هم ثابت وی .والله اعلم بالصواب



### د غلام، ماشوم،اود مجنون د ولايت حكم

قَالَ وَلَا وِلَايَةَ لِعَبْدٍ وَلَا صَغِيرٍ وَلَا مَجْنُونٍ او نشته ولايت دَ غلام دَ پاره او نهٔ دَ صغير دَ پاره او نهٔ دَ مجنون دَ پاره، لِأَنَّهُ لَا وِلَايَةَ لَهُمْ عَلَى أَنْفُسِهِمْ فَأَوْلَى أَنْ لَا تَثْبُتَ عَلَى غَيْرِهِمْ ځكه چې د دوی پخپل ذات ولايت ينشتې نو پخپل غير به ئې په درجه اولی ولايت ثابت نه وی ، وَلِأَنَّ هَذِهِ وِلَايَةٌ نَظَرِيَّةٌ وَلَا نَظَرَ فِي التَّفْوِيضِ إِلَى هَؤُلَاءِ او ځكه چې دا ولايت نظر يه دې،او دوی ته په سپارلو كې هيڅ نظر او شفقت نشته،

**حل اللغة:** ① ولاية: اختيار،تصرف ② نظرية: شفقتی ③ التفويض: سپارل ④ التوارث: د يو بل نه ميراث اوړل ⑤ سبيل: لاره،حجت

**تشريح:-** فرمائی .چه غلام ،صغير او مجنون(ليونی ) ته د ولايت حق نشته. ①دليل دادې.چه،ولايت متعديه،د ،ولايت قاصره،فرع ده.نو كوم كس ته چې په خپل ځان باندې ولايت حاصل نه وی .نو په بل باندې به په درجه اولی حاصل نه وی .اودې درې واړو ته په خپل ځان باندې دولايت حق نشته.نو په بل باندې به هم نه وی . ② دوهم دليل دادې.چه د ولايت دارومدار په شفقت باندې دې.او دې درې واړو ته كه د نكاح امور اوسپارلې شی .نو په دوی كې هيڅ شفقت نشته.ځكه چې ماشوم او ديوانه خود كفو حاصلولو نه عاجز دی .او پاتې شو غلام،نو دې د مولا په خدمت كې د بوخت كيدلو په وجه كفو نشی حاصلولې.

وَلَا وِلَايَةَ لِكَافِرٍ عَلَى مُسْلِمٍ لِقَوْلِهِ تَعَالَى او نشته ولايت كافر لره په مسلمان باند ،دَ دې وجهې نه چې دُ حق تعالی ارشاد دې، وَلَنْ يَجْعَلَ اللَّهُ لِلْكَافِرِينَ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ سَبِيلًا او هرګز نه وركوی الله كافرانو لره په مسلمانانو څه لار، وَلِهَذَا لَا تُقْبَلُ شَهَادَتُهُ عَلَيْهِ وَلَا يَتَوَارَثَانِ أَمَّا الْكَافِرُ فَتَثْبُتُ لَهُ وِلَايَةُ الْإِنْكَاحِ عَلَى وَلَدِهِ الْكَافِرِ لِقَوْلِهِ تَعَالَى }په دې وجه نهٔ شی قبلولې شهادت دَ كافر په مسلمان او نه دَ يو بل نه ميراث وړی ،پاتې شو كافر نو دَ ده دَ پاره دَ خپل كافر ځوئی دَ نكاح كاوه ولايت حاصل دې ځكه چې دَ حق تعالی ارشاد دې وَالَّذِينَ كَفَرُوا بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاءُ بَعْضٍ اوكوم خلګ چې كافر دی هغه دَ يو بل اولياء دی ، وَلِهَذَا تُقْبَلُ شَهَادَتُهُ عَلَيْهِ وَيَجْرِي بَيْنَهُمَا التَّوَارُثُ او په دې وجه دَ كافر شهادت په كافر مقبول وی او په دوی كې وراثت جاری وی

**تشريح:-** صاحب د قدوری رحمه الله فرمائی .چه كافر ته به هم د مسلمان په خلاف د ولايت حق نه وی .ځكه چې الله تعالی فرمائيلی دی .چه،الله كافر ته د مسلمان په خلاف څه لاره نه وركوی ،اود سبيل نه مراد دلته كې شرعی تصرف دې.اوچونكه كافر ته په مسلمان باندې د ولايت حق نشته.په دې وجه د مسلمان خلاف دكافر ګواهی هم نه قبليږی .او نه به كافر د مسلمان وراث جوړيږی .اونه به مسلمان د كافر وارث جوړيږی . البته كافر ته دخپل كافر ځوی په نكاح كاوه ولايت حاصل دې.د قرآن دآيت نه ثابت دی .يعنی ،كافران بعض د بعض دوستان دی ،اوهم په دې وجه دكافر ګواهی د كافر په خلاف قبليږی .او په دوی كې پخپلو كې وراثت هم جاری كيږی .

### دعصبات په عدم موجودګئ كې د ولايت مستحقين

وَلِغَيْرِ الْعَصَبَاتِ مِنَ الْأَقَارِبِ وِلَايَةُ التَّزْوِيجِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله او دَ غير ع سهار تو دَ پاره دَ اقاربو نه دَ نكاح كاوه ولايت دې،په نيز دَ امام ابوحنيفه رحمه الله نه مَعْنَاهُ عِنْدَ عَدَمِ الْعَصَبَاتِ د دې مطلب دا دې چې عصبات نه وی وَهَذَا اسْتِحْسَانٌ اودا استحسان دې وَقَالَ مُحَمَّدٌ رحمه الله او فرمائيلی دی امام محمد رحمه الله لَا تَثْبُتُ نه ثابتيږی (ولايت د غيرعصباتو لپاره ) وَهُوَ الْقِيَاسُ او دا (قول ) قياس دې وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله [1] او دا د

[1] القول الراجح هو قول أبی حنيفة رحمه الله وابويوسف رحمه الله معه علی الأصح كذا فی فتح القدير(١٨٢\٣) والخانية (١٦٥\١) وردالمحتار(٢٣٩\٣) ومجمع الأنهر(٣٣٨\١) والهندية (٢٨٤\١) نقلاً عن القول الراجح (٢٥٨\١)-

امام ابوحنیفه رحمه الله نه وَقَوْلُ أَبِي يُوسُفَ فِي ذَٰلِكَ مُضْطَرِبٌ وَالْأَشْهَرُ أَنَّهُ مَعَ مُحَمَّدٍ او د امام ابویوسف رحمه الله مشهور قول په دې اړه کې مترد دې او مشهوره دا ده چې دې د امام محمد رحمه الله سره دي

**حل اللغة:** ① **مضطرب:** ګډوډ، مترد، غیریقیني ② **صون:** ساتنه ③ **السلطان:** بادشاه ④ **التفويض:** سپارل، حواله کول]

**تشریح:**- مسئله داده.چه د عصبیاتو په عدم موجودګۍ کي به ولایت دچا لپاره ثابت وی .په دې اړه کې اختلاف دی.د امام صاحب رحمه الله په نیز به د عصبیاتو نه علاوه د نورو رشته دارانو لپاره ثابت وی .مثلاً ماما، ترورياني وغیره.د امام صاحب رحمه الله مذهب استحساناً دې.اود امام محمد رحمه الله په نیزد عصبیاتو نه علاوه د نورو رشته دارانو لپاره ولایت ثابت نه دې.او قیاس هم دا دې.د امام ابویوسف رحمه الله په قول کې اضطراب دې.خو مشهوره داده.چه د امام محمد رحمه الله سره دې.

لَهُمَا مَا رَوَيْنَا، وَلِأَنَّ الْوِلَايَةَ إِنَّمَا ثَبَتَتْ صَوْنًا لِلْقَرَابَةِ عَنْ نِسْبَةِ غَيْرِ الْكُفْءِ إِلَيْهَا وَإِلَى الْعَصَبَاتِ الصِّيَانَةُ د صاحبینو رحمهما الله دلیل دې هغه چې مونږ روایت کړو ځکه چې ولایت ثابتیږی د قرابت محفوظ کاوه د پاره د غیر کفود ده اړخ ته په منسوب کاوه سره او د ساتنه د ع سهار تو اړخ ته په سپارلو کې دې،

**تشریح:**-د صاحبینو رحمهما الله دلیل په ماقبل کې روایت شوې حدیث دې.یعنی [النکاح الی العصبیات] او،الف لام، دجنس دې.نو مطلب به داوی .چه جنس نکاح سپارلې شوې ده.جنس عصبیاتو ته.ددوی غیر ته په دې کې هیڅ دخل نشته. دوهم دلیل عقلی دادې.چه ولایت د قرابت د ساتنه لپاره وی .چه رشته دارۍ اړخ ته غیرکفو منسوب نکړې شی .اودا ساتنه به عصبیاتو ته په سپارلوسره کیږی .ځکه چې د ولایت حق صرف عصبیاتو ته دې.د عصبیاتو نه علاوه ته نشته.

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله أَنَّ الْوِلَايَةَ نَظَرِيَّةٌ وَالنَّظَرُ يَتَحَقَّقُ بِالتَّفْوِيضِ مَنْ هُوَ الْمُخْتَصُّ بِالْقَرَابَةِ الْبَاعِثَةِ عَلَى الشَّفَقَةِ د ابوحنیفه رحمه الله دلیل دا دې چې ولایت نظری دې او نظر او شفقت متحقق کیږی په سپارلو سره هغه سړی اړخ ته کوم چې په شفقت آماده کوونکی قرابت سره مختص وی

**تشریح:**- د امام صاحب رحمه الله دلیل دادې.چه د ولایت مدار په شفقت باندې دې.او شفقت به په هرهغه کس کې موجود وی .چه په هغه کې ،قرابت باعثه علی الشفقت،موجود وی .نو په کوم کس کې چې داسې قرابت موجود شی .هغه ته به ولایت حاصل وی .که عصبه وی .او که غیر عصبه وی .اود [النکاح الی العصبیات] حدیث خواب دادې.چه د عصبیاتو په موجودګۍ کې به نکاح هم دوی ته سپارلې شی .خوددوی په عدم موجودګۍ کې د غیرعصبیاتو نفی نه ده شوې.

وَمَنْ لَا وَلِيَّ لَهَا يَعْنِي الْعَصَبَةَ مِنْ جِهَةِ الْقَرَابَةِ او د کومې ښځې چې څوك ولی نه وی ،یعنی عصبه د جهت د قرابت نه، إِذَا زَوَّجَهَا مَوْلَاهَا الَّذِي أَعْتَقَهَا جَازَ هر کله چې د دې نکاح اوکړو د دې مولی ،کوم چې دا ازاده کړې ده،نو جائز دې لِأَنَّهُ آخِرُ الْعَصَبَاتِ ځکه چې اقا اخرالعصبات دې وَإِذَا عُدِمَ الْأَوْلِيَاءُ فَالْوِلَايَةُ إِلَى الْإِمَامِ وَالْحَاكِمِ او هر کله چې واړه اولیاء ختم شی نو ولایت د امام او حاکم د پاره دې لِقَوْلِهِ عليه الصلاة والسلام السُّلْطَانُ وَلِيُّ مَنْ لَا وَلِيَّ لَهُ[1] ځکه چې د نبی کریم ﷺ ارشاد دې. جه بادشاه ولی دې د هغه چا چې ولی ئې نه وی

1) من حديث عائشة رضي الله عنها أخرجه أبوداود فی النكاح باب ۱۹ رقم ۲۰۸۳ والترمذی فی النكاح باب ۱٤ رقم ۱۱۰ وابن ماجه فی النكاح باب ۱۵ رقم ۱۸۷۹)_



**تشریح:**-صاحب دقدوری رحمه الله بیان کړی دی .که د صغیره ولی نه وی .یعنی د قرابت په وجه عصبه نه وی .او ددې نکاح مولا عتاقه اوکړه.نو ټیك ده.ځکه چې دا آخری عصبه دې.او هرکله چې هیڅ څوك ولی نه وی .نه عصبه وی .او نه غیر عصبه وی .نو په دې صورت کې ولایت امام او حاکم لپاره وی .د امام نه مراد خلیفه اود حاکم نه مراد دده نائب دې.یاد حاکم نه مراد قاضی دې.خو قاضی ته به د نکاح ولایت هغه وخت حاصل وی .هرکله چې امام ده ته ددې اختیار ورکړې وی .په دلیل کې حدیث دی.چه،دچا هیڅ څوك ولی نه وی دهغه ولی امام دې،.

## د ولی اقرب په عدم موجودګۍ د ولی ابعد ولایت

وَإِذَا غَابَ الْوَلِيُّ الْأَقْرَبُ غَيْبَةً مُنْقَطِعَةً جَازَ لِمَنْ هُوَ أَبْعَدُ مِنْهُ أَنْ يُزَوِّجَ هر کله چې قریب ولی غائب وی په غیبت منقطعه سره نو جائز دی د لرې ولی لره چې د دې نکاح او کړی ، وَقَالَ زُفَرُ: لَا يَجُوزُ لِأَنَّ وِلَايَةَ الْأَقْرَبِ قَائِمَةٌ او امام زفر رحمه الله فرمائی چې جائز نه دی ځکه چې ولایت د اقرب قائم دې لِأَنَّهَا ثَبَتَتْ حَقًّا لَهُ صِيَانَةً لِلْقَرَابَةِ فَلَا تَبْطُلُ بِغَيْبَتِهِ ځکه چې هغه د ده جوړشوې حق ثابت شوې دې نو په غیبت سره نه باطلیږی ،د پاره د محفوظ کاوه د قرابت . وَلِهَذَا لَوْ زَوَّجَهَا حَيْثُ هُوَ جَازَ دا وجه ده چې که هغه ورته نکاح او کړو هغه ځای کوم ځای چې وه نو جائز دې، وَلَا وِلَايَةَ لِلْأَبْعَدِ مَعَ وِلَايَتِهِ او د اقرب د ولایت سره د ابعد ولایت نه وی ،

**حل اللغة:** ① **ولایت نظریة:** د شفقت او مهربانۍ اختیار ② **مقدم:** وړاندې ③ **متساويين:** دوې [دوه] برابر]

**تشریح:**- په ماقبل کې علامه مرغینانی رحمه الله بیان کړی وو.چه د ولی اقرب په موجودګۍ کې ،ولی ابعد محروم وی .په هغې دا مسئله متفرع ده.مسئله داده.چه ،ولی اقرب، مثلاً د غیبت منقطعه په طور باندې غائب شو.نو ولی ابعد مثلاً د نیکه به د تزویج ولایت ثابت وی .او که نه؟ یعنی د ولی اقرب په غیرموجودګۍ کې به ولی ابعد ته د نکاح اجازت وی .او که نه؟ زمونږ په نیز خو جائز دی .او امام زفر رحمه الله دې ته ناجائز وائی .

د امام زفر رحمه الله د دلیل حاصل دادې.چه د ولی اقرب ولایت موجود دې.ځکه چې دې ددې لپاره حق ثابت شوې دې.چه د قرابت ساتنه اوشی .نود ولی اقرب په غائب کیدلوسره به دده ولایت نه باطلیږی .او ددې تائید ددې نه هم کیږی .چه ولی اقرب که د صغیره نکاح هلته کې اوکړه.کوم ځائې کې چې دې په سفر کې موجود وی .نودا نکاح شرعاً درست ده.ددې نه هم معلومیږی .چه د ولی اقرب ولایت پاته دې.ګنی دده تړلې شوې نکاح به درست نه وې.او هرکله چې د ولی اقرب ولایت پاته دې.نو ولی ابعد ته به د ولایت حق حاصل نه وی .ځکه چې د ولی اقرب ولایت پاته وی . نو ولی ابعد محروم وی .

وَلَنَا أَنَّ هَذِهِ وِلَايَةٌ نَظَرِيَّةٌ وَلَيْسَ مِنَ النَّظَرِ التَّفْوِيضُ إِلَى مَنْ لَا يُنْتَفَعُ بِرَأْيِهِ زمونږ دلیل دا دې چې دا ولایت نظری دې . او دا څه نظر او شفقت نه دې چې داسې سړی ته ولایت اوسپارلې شی د کوم د رائې نه چې نفع نه شی حاصلیدې، فَفَوَّضْنَاهُ إِلَى الْأَبْعَدِ نو مونږ دا ولی ابعد ته اوسپارلو،

**تشریح:**- زمونږ دلیل دادې.چه د ولایت مدار په شفقت باندې دې.اود کوم کس د رائې نه چې نفع اخستل ممکن نه وی .نو ده ته دنکاح امورو په سپارلوکي هیڅ شفقت نشته.ځکه مونږ نکاح ولی ابعد ته اوسپارله.او ولی ابعد زمونږ په نیز په امام او حاکم باندې مقدم دې.لکه کله چې ولی اقرب مړشی .

مُقَدَّمٌ عَلَى السُّلْطَانِ او ولی ابعد مقدم دې په بادشاه. كَمَا إِذَا مَاتَ الْأَقْرَبُ لکه چې ولی اقرب مړشی ، وَلَوْ زَوَّجَهَا حَيْثُ هُوَ فِيهِ مَنَعَ وَبَعْدَ التَّسْلِيمِ نَقُولُ لِلْأَبْعَدِ بُعْدُ الْقَرَابَةِ وَقُرْبُ التَّدْبِيرِ وَلِلْأَقْرَبِ عَكْسُهُ او که ولی اقرب کوم ځای چې وی هلته د دې نکاح او کړی نو په دې کې منع ده او د تسلیم نه نو مونږ وایو چې د ولی ابعد د پاره بعد د قرابت دې او قرب تد بیر دې او د ولی اقرب د پاره د دې عکس دې فَنُزِّلَا مَنْزِلَةَ وَلِيَّيْنِ مُتَسَاوِيَيْنِ فَأَيُّهُمَا عَقَدَ نَفَذَ وَلَا يُرَدُّ نو دا

د دوي [دوه] برابر درجو اولياء جوړ كړي شو نو په دوى كي چي كوم يونكاح او كړي نا فذ به وي او رد كولي به نه شي .

**تشريح:-** په دې عبارت كي په امام شافعي رحمه الله باندې رد دې.څكه دې فرمائي .چه ولى اقرب كه مرشى نو ولايت به ولى ابعد اړخ ته نه منتقل كيږى .بلكه امام وقت اړخ ته به منتقل كيږى .دغه ډول كه ولى اقرب غائب شى .بيا به هم ددوى په نيز امام وقت ته ولايت حاصل وى .ولى ابعد ته به حاصل نه وى .خو زموږ په نيز ولى ابعد په امام وقت باندې مقدم دې.

د حضرت امام زفر رحمه الله د قول[ولو زوجها حيث هو] ځواب دادې.چه موږ دا نه منو.چه ولى اقرب كوم ځائي كي هم موجود وى .او هلته كي ئې نكاح اوكړله.كوم ځائي كي چې اوسيږى .نو نكاح به درست وى .بلكه زموږ رائې داده.چه نكاح به درست نه وى .نودا مسئله په دليل كي پيش كول مناسب نه دى .او كه موږ اومنو.چه د ولى اقرب د غائب كيدلو په حالت كي شوې نكاح ټيك ده.نو ددې وجه داده.چه په ولى اقرب،او په ولى ابعد دواړو كي يوه يوه خوبى او يوه يوه خرابى ده.څكه چې په ولى ابعد كي بُعد د قرابت اوقُرب د تدبير دې.او په ولى اقرب كي قرب د قرابت،او بُعد د تدبير دې.نودا دواړه داسې شو.لكه چې د يوې درجې دوې [دوه] وليان وى .او قاعده ده.كه د برابر درجه دوې [دوه] وليان وى .نوپه دې دواړوكي چې كوم يو كس هم عقد د نكاح اوكړى .هغه به نافذ وى .دا به نشى رد كولې.دغه ډول دلته كي هم چې كوم عقد كوى .هغه به نافذ وى .په دې وجه د ولى اقرب كړې شوې نكاح نافذ كړې شوې ده.

## غيبت منقطعه

وَالْغَيْبَةُ الْمُنْقَطِعَةُ أَنْ يَكُونَ فِي بَلَدٍ لَا تَصِلُ إِلَيْهَا الْقَوَافِلُ فِي السَّنَةِ إِلَّا مَرَّةً وَاحِدَةً دا دې چې هغه په داسې ښار كي وى چې قافلې ورته نه رسى په كال كي مگر يو وار ، وَهُوَ اخْتِيَارُ الْقُدُورِيِّ او غيبت منقطعه دا د قدورى خوښه كړې ده

**حل اللغة:** ① القوافل:جمع د قافلة،د ګڼرو خلگو هغه جماعت او ډله چې په يوځائې د يو ځائي نه بل ځائې ته سفر كوى ② استطلاع: معلوملول ③ ابقاء: پاته پاتې كول]

**تشريح:-** مصنف رحمه الله په دې عبارت كي د غيبت منقطعه تعريف كول غواړى .په دې اړه كي د صاحب د قدورى رحمه الله مختار مذهب خودا دې.چه سړې داسې ښار ته لاړشي .چه هلته كي قافلې په كال كي يوځل ځى .

وَقِيلَ أَدْنَى مُدَّةِ السَّفَرِ او وئيلى شوى دى چې ادنى مده د سفر ده، لِأَنَّهُ لَا غَايَةَ لِأَقْصَاهُ وَهُوَ اخْتِيَارُ بَعْضِ الْمُتَأَخِّرِينَ څكه چې د منتهى د سفر څۀ انتها نشته او دا خوښه كړې دۀ بعضو متاخرينو

**تشريح:-** د بعض متاخرينومختار مذهب دادې.چه ادنى موده د سفر، يعنى د درې ورځو په مسافه باندې تللو سره به غيبت منقطعه متحقق كيږى .څكه چې د سفر د مودې هيڅ انتهاء نشته.نود سفر د ادنى مودې اعتبار شوې دې.

وَقِيلَ: إِذَا كَانَ بِحَالٍ يَفُوتُ الْكُفْءُ الْخَاطِبُ بِاسْتِطْلَاعِ رَأْيِهِ او وئيلى شوى دى چې كله په داسې حال كي وى چې كفو به فوت شى د دۀ په رائې معلوملو سره. وَهَذَا أَقْرَبُ إِلَى الْفِقْهِ لِأَنَّهُ لَا نَظَرَ فِي إِبْقَاءِ وِلَايَتِهِ حِينَئِذٍ او دا اقرب الى لفقه ده،څكه چې دغه وخت په ولايت پاته پاتې كاوه كي څۀ شفقت نشته

**تشريح:-** بعض حضرات چې په هغوى كي شمس الائمه سرخسى رحمه الله هم دې.ددوى رائې داده.كه ولى داسې ځائې ته لاړشى .چه دده رائې كه معلوميږى .نوكفو فوت كيږى .نوبه داسې صورت كي به غيبت منقطعه متحقق وى .دا قول فقهيه دلائلو سره زيات قريب دې.څكه چې د كفو فوت كيدلو باوجود دده ولايت پاته ساتلوكي هيڅ شفقت نشته دې.حالانكه د ولايت مدار په شفقت باندې دې.په دې وجه په جامع صغير كي



وئيلى شوى دى .چه ولى كه په ښاركي پټ شو.او دده په اړه كي هيڅ چاته علم نه وى .نودا به غيبت منقطعه وى .والله ا علم

## د مجنوني په پلار،او بالغ ځوى كي به مستحق د ولايت څه ولى وى؟

وَإِذَا اجْتَمَعَ فِي الْمَجْنُونَةِ أَبُوهَا وَابْنُهَا فَالْوَلِيُّ فِي نِكَاحِهَا ابْنُهَا فِي قَوْلِ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رحمهما الله (١) او هر كله چې جمع شى په مجنو نه كي د دې پلار او ځوئ نو د دې نكاح كوونكې ولى د دې ځوئ دې،په قول د امام ابوحنيفه،او ابى يوسف كي ، وَقَالَ مُحَمَّدٌ رحمه الله أَبُوهَا لِأَنَّهُ أَوْفَرُ شَفَقَةً مِنَ الِابْنِ او امام محمد رحمه الله فرمائى چې پلار ئې دې څكه چې هغه زيات شفقت والا دې د ځوئى نه

**حل اللغة:** ① المجنونة: ليونئ ② اوفر:زيات ③ انكاح:په نكاح وركول]

**تشريح:-** مسئله داده.چه يود مجنونه ښځې پلار دې.اود مخكنى خاوند نه ئې بالغ زوې دې.نو ددې مجنونه ښځې د ولايت حق به چاته حاصل وى .په دې سلسله كي دشيخينو رحمهما الله مذهب خو دادې.چه د ولايت حق ځوى ته حاصل دې.اود امام محمد رحمه الله مذهب دادې.چه د ولايت حق پلار ته حاصل دې.د امام محمد رحمه الله دليل دادې.چه په پلار كي د ځوى په مقابله شفقت زيات دې.او ددې ولايت مدار په شفقت باندې دې.نود شفقت د زياتوالى په وجه به پلار ته ولايت حاصل وى .ځوى ته به حاصل نه وى .

وَلَهُمَا أَنَّ الِابْنَ هُوَ الْمُقَدَّمُ فِي الْعُصُوبَةِ، وَهَذِهِ الْوِلَايَةُ مَبْنِيَّةٌ عَلَيْهَا او د شيخينو دليل دا دې چې ځوئ مقدم دې په عصبه كيدو كي ، او دا ولايت په عصبيت باندې مبنى دې وَلَا مُعْتَبَرَ بِزِيَادَةِ الشَّفَقَةِ كَأَبِي الْأُمِّ مَعَ بَعْضِ الْعَصَبَاتِ وَاللهُ أَعْلَمُ او د شفقت د زياتولى اعتبار نشته لكه د مور پلاره سره د بعضو ع سهار تو نه والله تعالى اعلم

**تشريح:-** د شيخينو رحمهما الله دليل دادې.چه په عصبه كيدلوكي زوې مقدم دې.لكه چې د ځوى په موجودګئ كي پلار ته صرف شپږمه برخه ملاويږى .او زوې عصبه وى .اودا ولايت مبنى وى په عصبيت باندې.نو زوې به ولى وى .پلار به نه وى .اود شفقت د زياتوالى په اړه كي د امام محمد رحمه الله د دليل ځواب دادې.چه په ولايت كي نفس شفقت معتبر دې.د شفقت زياتوالې معتبر نه وى .مثلاً د يوكس د مورپلار(نيكه)دې.او اكا ، وراره دى .نو په ولايت كي به اكا په وراره مقدم وى . حالانكه په نيكه(د مورپلار)كي هم شفقت او محبت زيات وى .نو معلومه شوه.چه د شفقت د زياتوالى اعتبار نه كيږى .والله اعلم

## په نكاح كي د كفو احكام

**فصل في الكفاءة:** الْكَفَاءَةُ فِي النِّكَاحِ مُعْتَبَرَةٌ ( دا) فصل د كفوه ( برابرئ په بيان كي ) دې.همسرى معتبره ده په نكاح كي .قَالَ عليه السلام أَلَا لَا يُزَوِّجُ النِّسَاءَ إِلَّا الْأَوْلِيَاءُ، وَلَا يُزَوَّجْنَ إِلَّا مِنَ الْأَكْفَاءِ(٢) نبى كريم ﷺ ارشاد فرمائيلې دې خبر دار : نكاح د نه كوى د ښځو مگر اولياء او نكاح د نه كوى ښځې مگر د همسرو سره وَلِأَنَّ انْتِظَامَ الْمَصَالِحِ بَيْنَ الْمُتَكَافِئَيْنِ عَادَةً څكه چې د مصالحو انتظام عادةً د دوؤ همسرو په مينځ كي كيداې شى . لِأَنَّ الشَّرِيفَةَ تَأْبَى أَنْ تَكُونَ مُسْتَفْرَشَةً لِلْخَسِيسِ فَلَا بُدَّ مِنِ اعْتِبَارِهَا څكه چې شريفه ښځه د كمتر فراش كيدل نۀ خوښوى ،په دې وجه د كفاءت اعتبار ضرورى دې.

**حل اللغة:** ① الشريفة:معززه،شريفه ② مستفرش:فراش جوړونكې ③ تغيظ:غصه كوى ④ دناءة: كم عقلتوب]

**تشريح:-** د كفاءت معنى ده همسرى ،برابرى ، كفو، مثال.،مساوى باالكفاءة فى النكاح، داده.چه خاوند د

---

(١) القول الراجح هو قول الشيخين رحمهما الله كذا فى فتح القدير(١٨٥\٣) والخانية (١٦٥\١) وردالمحتار(٣٤٣\٢) والبناية (٦١٥\٤) نقلاً عن القول الراجح (٢٥٩\١)_

(٢) من حديث جابربن عبدالله رضى الله عنهما أخرجه البيهقى فى السنن الكبرى (٢١٥/٧) والدارقطنى فى سننه (٢٤٤/٣)رقم ١١ فى باب المهر)_

ښځې مساوي وي .ددې په حسب کي ،نسب کي ،دين کي ،عمراو جمال کي ،وغيره ذالك

Ⓐپه نکاح کې د کفاءة اعتبار په دې وجه شوې دې.چه د وليانو د فسخ حق ساقط شی .او نکاح لازم شي .په نکاح کې د کفو په معتبر کيدلوباندې دليل د نبی کريمﷺ فرمان دې.،خبردار دښځو نکاح دې نه کوی مګراولياء،او نکاح دې نه کوی .مګر د برابر سره(يعنی په کفوکي )،د محدثينو رحمهم الله په نيز دا حديث دداسې درجې نه دې.چه دې نه استدلال اوکړې شی .ځکه چې بعض راويان متهم بالکذب دی .زيات صحيح حديث د علي ﷺ دې.چه ترمذی روايت کړې دې.د حديث ژباړه داده.،درې شيان (ځيزونه ) دی .چه دا به نشی موٴخر کولې.لمونځ چې کله ددې وخت راشی ،جنازه چې کله حاضره شی ،اود خاوند نه بغيرښځه کله چې ددې کفو ملاوٴشی ، دوهم عقلی دليل دادې.چه د نکاح څه مصلحتونه وی .اودا مصلحتونه واړه هغه وخت حاصليږی .چه کله نکاح په دوې [دوه] برابرو کې معقد شی .په دې وجه موږ وايو.چه د نکاح مصلحتونه حاصلولو لپاره دکفو کيدل ضروری دی .ځکه چې د شريف خاندان ښځه دا نشی برداشت کولې.چه په يو کمينه (نيچ) خاندان کې دسړی فراش جوړه شی .نود کفاءت اعتبار ضروری دې.

بِخِلَافِ جَانِبِهَا لِأَنَّ الزَّوْجَ مُسْتَفْرِشٌ فَلَا تَغِيظُهُ دَنَاءَةُ الْفِرَاشِ په خلاف دَ ښځې دَ جانب نه ځکه چې خاوند فراش جوړوونکې دې نو د ناءت دَ فراش دهٔ لره نه غصه کوی وَإِذَا زَوَّجَتِ الْمَرْأَةُ نَفْسَهَا مِنْ غَيْرِ كُفْءٍ فَلِلْأَوْلِيَاءِ أَنْ يُفَرِّقُوا بَيْنَهُمَا دَفْعًا لِضَرَرِ الْعَارِ عَنْ أَنْفُسِهِمْ اوکله چه خپل وادهٔ او کړی ښځه په غير کفو کې نو دَ اولياوٴ حق دې چې دوی دواړو لره جُداکړی دَ پاره دَ دفع کاوه دَ ضرر دَ عار دَ خپلو ځانونو

تشریح:- البته د ښځې په اړخ کې کفاءت معتبر نه دې.يعنی چې سړې د شريف خاندان وی .او ښځه د کمتر خاندان وی .نو په دې کښې هيڅ باك نشته.ځکه چې خاوند فراش جوړونکې دې.نود فرش ادنی اوکمتر کيدل،دې په غلطئ کې نشی مبتلاکولې.اوس يو مثال د متفرع دې.چه ښځې که خپله نکاح پخپله د کفو نه بغيراوکړله.نو ددې وليانو ته به د فسخ حق حاصل وی .دخپل ځان نه د عارضرر د فع کاوه دپاره.خود تفريق دا حق به د ښځې د بچی زيګولو نه مخکې مخکې وی .د بچی زيګيدلو نه روسته به وليانو ته د فسخ حق نه وی .

## په کفاءت کې د نسب اعتبار

ثُمَّ الْكَفَاءَةُ تُعْتَبَرُ فِي النَّسَبِ لِأَنَّهُ يَقَعُ بِهِ التَّفَاخُرُ بيا کفاءت معتبر دې په نسب کې ،ځکه چې په دې سره تفاخر وی فَقُرَيْشٌ بَعْضُهُمْ أَكْفَاءٌ لِبَعْضٍ نو قريش بعض دَ بعضو کفوٴ دی وَالْعَرَبُ بَعْضُهُمْ أَكْفَاءٌ لِبَعْضٍ او عرب بعض دَ بعضو کفوٴ دی

حل اللغة:① التفاخر:په يوبل باندې فخرکول،ځان لوئې ګنړل ② التفاضل:اوچتوالې ③ نبا: خبر ④ تسکين: قراروركول ،آرام وركول ⑤ الخساسة: سپکوالې،رذيلوالې]

تشریح:- په مبسوط کې دی .چه دسړی په حق کې په کفاءت معتبر وی .په نسب،حريت،مال،پيشه، اوپه نسب کې ، او بعضو د تقوی ،اسلام ،اود عقل هم اضافه کړې ده.او په منهاج کې دی .چه امام شافعی رحمه الله په کفاءت کې ،د عيوب نه سلامت،نسب،حريت، عفت، او پيشه معتبر کړې ده.امام محمد رحمه الله د دين او مذهب هم اضافه کړې ده.(عينی شرح هدايه)

Ⓐمصنف رحمه الله فرمائی .چه په نسب کې کفاءت معتبر دې.ځکه چې نسب سره هم په خپل مينځ کې يوبل باندې فخر کولې شی .او کوم شی چې داسې وی .چه په هغې سره خلګ فخر کوی .په هغې کې د کفاءت اعتبار شوې دې.نو يوقريشی به دبل قريشی کفو وی .اود قريشی نه علاوه به يو عرب د بل عرب کفو وی .

وَالْأَصْلُ فِيهِ قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ { قُرَيْشٌ بَعْضُهُمْ أَكْفَاءٌ لِبَعْضٍ بَطْنٌ بِبَطْنٍ، وَالْعَرَبُ بَعْضُهُمْ أَكْفَاءٌ لِبَعْضٍ قَبِيلَةٌ بِقَبِيلَةٍ،



وَالْمَوَالِي بَعْضُهُمْ أَكْفَاءٌ لِبَعْضٍ رَجُلٌ بِرَجُلٍ }(۱)او اصل په دې کې ارشاد دَ نبی عليه السلام دې چې قريش بعض دَ دوی نه کفوٴ دی د بعضو،بطن دَ بطن،او بعضِ عرب کفو دی دَ بعضو يوه قبيله دَ بلې قبيلې سره،او عجمی خلګ بعض دَ دوی کفو دې د بعضو يو سړې د بل سړی

تشریح:- په دې سلسله کې دليل د نبی کريمﷺ فرمان دې.چه،قريش خپل مينځ کې د يوبل کفو دی .يو بطن د بل بطن،او عرب خپل مينځ کښې د يوبل کفو دی .يوه قبيله د بلې قبيلې اوغير عرب(عجم) خپل مينځ کې د يوبل کفو دی .يو کس د بل کس،د بيان کړی حديث په وجه په قريشوکې په خپل مينځ کې په يوبل باندې فضيلت معتبر نه دې.نو هر قريشی به د بل قريشی کفو وی .ځکه چې دحديث،الائمه من قريش، په وجه په هرقريشی کې د خلافت صلاحيت او اهليت شته.

وَلَا يُعْتَبَرُ التَّفَاضُلُ فِيمَا بَيْنَ قُرَيْشٍ لِمَا رَوَيْنَا (۲) او دَ قريشو پخپل مينځ کې تفاضل معتبر نه دې،دَ هغې حديث په وجه چې موږ روايت کړو

تشریح:- البته د قريشی نه علاوه نور عرب د قريش کفو نشی جوړيدلې.ځکه چې د قريش نه علاوه نور عرب کې د خلافت صلاحيت نشته.نوغير عرب قريش،د قريش مساوی نشی کيدلې.نو کفو هم نشی جوړيدلې.امام محمد رحمه الله فرمائی .چه په قريشوکې په خپل مينځ کې په يوبل باندې فضيلت نشته.خوکه کوم نسب مشهور وی .لکه خاندان خلافت،نو په داسې مشهور خاندان کې به تفاضل معتبر وی .يعنی په قريش کې به دَ خاندان خلافت جينئ،د دوهم قريش(کوم چې د خاندان خلافت ځنې نه وی )کفو نه ده.ترڅو چې قريشيه بالغه کومه چې د خاندان خلافت ځنې ده.دې نکاح اوکړه،د يو داسې قريش سره،چه د خاندان خلافت ځنې نه وو.نو اولياء ته به د اعتراض حق حاصل وی .

وَعَنْ مُحَمَّدٍ رحمه الله كَذَلِكَ إِلَّا أَنْ يَكُونَ نَسَبًا مَشْهُورًا كَأَهْلِ بَيْتِ الْخِلَافَةِ او دَ محمد رحمه الله نه روايت دې مګر که دا نسب مشهور وه لکه خاندان دَ خلافت ،كَأَنَّهُ قَالَ تَعْظِيمًا لِلْخِلَافَةِ وَتَسْكِينًا لِلْفِتْنَةِ وَبَنُو بَاهِلَةَ لَيْسُوا بِأَكْفَاءٍ لِعَامَّةِ الْعَرَبِ؛ لِأَنَّهُمْ مَعْرُوفُونَ بِالْخَسَاسَةِ ګويا دا امام محمد رحمه الله دَ تعظيم دَ خلافت او دَ فتنې سړولو دَ پاره وئيلې ده او بنو باهله دَ عامو عربو کفوٴ نه دی ځکه چې دغه په خساست کې مشهور دی

تشریح:-علامه مرغينانی رحمه الله فرمائی .چه د امام محمد رحمه الله د مشهور نسب استثناء کول،ګويا ددوی په نظر سره د خاندان خلافت تعظيم، او فتنه لرې کول دی .په آخرکې فرمائی .چه په عرب کې يوخاندان بنوباهله دې.دوی به د عامة العرب کفو نه وی .ځکه چې ددوی په اړه کې مشهوره ده.چه د مردار هډوکی جوش کوی .او ددې نه غوړی اوباسی .نودا خاندان بې حده سپك او دنی دې. په دې وجه به دوی هم د عام عرب کفو نشی جوړيدلې.

Ⓐفوائد:قريش هغه خلګو ته وائی .څوك چې د نضربن کنانه په اولاد کې وی .اوڅوك چې د نضربن کنانه په اولاد کې نه وی .هغوی غيرقريش دی .زبير بن بکار بيان کړی دی .چه د عرب شپږ طبقات دی .،شعب، قبيله، عماره، بطن، فخذ ، فصيله ، شعب د ټولو نه اوچت دی .اود ډيرو قبيلو جامع ده.او قبيله جامع ده.عماره ته،او عماره بطون ته،او بطن افخاذ ته، او فخذ فصايل ته.نو مضر او ربيعه شعب دی .او کنانه قبيله دی .او قريش عماره دی .او قصی بطن دی .او هاشم فخذ دی .او عباس فصيله دی .(عينی شرح هدايه)

(۱) من حديث عبدالله بن عمر رضي الله عنهما أخرجه البيهقي في السنن الكبرى (۲۱۷/۷)_

(۲) القول الراجح هو قول الشيخين رحمهما الله كذا في (العناية (۱۹۰\۳) والخانية (۱۶۳\۱) ورد المحتار(۳\۳۴۵) ومجمع الأنهر(۳۴۰) نقلاً عن القول الراجح (۱\۲۶۰)_

## په اعاجمو کې د کفاءت تفصیل

وَأَمَّا الْمَوَالِي فَمَنْ كَانَ لَهُ أَبَوَانِ فِي الْإِسْلَامِ فَصَاعِدًا فَهُوَ مِنَ الْأَكْفَاءِ يعني لِمَنْ لَهُ آبَاءٌ فِيهِ او هر چې عجمیان دي نو چالره چې وی دوې [دوه] پلرو نه په اسلام کې یا زیات نو دغه کفو دي، د هغه چا چې ډیر پلرونه وی په اسلام کې. وَمَنْ أَسْلَمَ بِنَفْسِهِ أَوْ لَهُ أَبٌ وَاحِدٌ فِي الْإِسْلَامِ لَا يَكُونُ كُفْئًا لِمَنْ لَهُ أَبَوَانِ فِي الْإِسْلَامِ[1] او کوم سړي چې پخپله مسلمان شو یا د ده یو پلار وه په اسلام کې دې نه دې کفو د هغه چا چې دوې [دوه] پلرونه ئې په اسلام کې لِأَنَّ تَمَامَ النَّسَبِ بِالْأَبِ وَالْجَدِّ ځکه چې د نسب تکمیل په پلار او نیکه سره وی وَأَبُو يُوسُفَ أَلْحَقَ الْوَاحِدَ بِالْمُثَنَّى كَمَا هُوَ مَذْهَبُهُ فِي التَّعْرِيفِ او امام رحمه الله یو لره د دوؤ سره لاحق کړې دې، لکه چې دغه د ده مذهب دې په تعریف کې

تشریح:- په دې عبارت کې په اعاجم کې د کفاءت تفصیل بیان شوې دې. فرمائی. چه دچا پلار اونیکه دواړه مسلمانان وی. داکس به د هغه کس کفو جوړیږی. د کوم کس چې پلار نیکه او پرنیکه (یعنی د نیکه پلار) او دده نه هم بره حضرات مسلمانان وی. اوکوم کس چې په خپله خو مسلمان وی. خو پلار ئې مسلمان نه وی. یا پخپله هم مسلمان او پلار ئې هم مسلمان دې. خو نیکه ئې مسلمان نه دې. نودا کس به دهغه کس کفو جوړیږی. د کوم کس چې پلار اونیکه دواړه مسلمانان وی. ځکه چې د نسب تکمیل د پلارنیکه دواړو په ذکر کولوسره کیږي. او ابویوسف رحمه الله یو قیاس کړو په دوې [دوه] باندې. اصل اختلاف خو په تعریف کې دې. امام ابویوسف رحمه الله فرمائي. چه په شهادت وغیره کې د ګواه تعریف دده او دده د پلار نوم ذکر کاوه سره پوره کیږي. د نیکه نوم ذکر کولوه ته اړتیا نشته. اود طرفینو رحمهما الله په نیز په تعریف کې د پلار نیکه دواړو ذکر کاوه ضروری وی.

وَمَنْ أَسْلَمَ بِنَفْسِهِ لَا يَكُونُ كُفْئًا لِمَنْ لَهُ أَبٌ وَاحِدٌ فِي الْإِسْلَامِ کوم چې پخپله مسلمان شی دې د هغه کفو نه دې د کوم چې یو پلار په اسلام کې وی ، لِأَنَّ التَّفَاخُرَ فِيمَا بَيْنَ الْمَوَالِي بِالْإِسْلَامِ ځکه چې تفاخر په عجمیانو کې په اسلام سره وی.

تشریح:- کوم کس چې پخپله مسلمان وی. دده پلارمسلمان نه وی. دې د هغه کس کفو نشی کیدلې. د کوم یو کس چې پلار هم مسلمان وی. ځکه چې عجمي خلګ د اسلام په ذریعه هم پخپلو کې تفاخر کوی.

وَالْكَفَاءَةُ فِي الْحُرِّيَّةِ نَظِيرُهَا فِي الْإِسْلَامِ فِي جَمِيعِ مَا ذَكَرْنَا او کفاءت د خریت نظیر دی د کفاءت فی الاسلام په ټولو هغو کې چې موږ ذکر کړل، لِأَنَّ الرِّقَّ أَثَرُ الْكُفْرِ وَفِيهِ مَعْنَى الذُّلِّ فَيُعْتَبَرُ فِي حُكْمِ الْكَفَاءَةِ ځکه چې مملوك کیدل د کفر اثر دې او په دې کې د ذلت معنی ده، نو په حکم د کفاءت کې به د دې اعتبار کولې شی

تشریح: په حریت کې د کفاءت حکم داسې دې. لکه ځنګه چې په اسلام کې دې. لنډیز داده. که یوکس په خپله هم آزاد وی. او دده پلار اونیکه هم آزاد وی. نودې به دهغه کس کفو وی. دکوم کس چې ډیر آباء آزاد وی. مثلاً پلارهم آزاد، نیکه ئې هم آزاد، او پرنیکه ئې هم آزاد وی. په کفاءت کې د حریت اعتبار کولوکې به نورو صورتونه هم په دې باندې قیاس کولې شی. دلیل دادې. چه مملوك کیدل د کفر اثر دې. لکه چې کفر دې. نولکه ځنګه چې په کفر او اسلام کې کفاءت نشته. دغه ډول په حریت او رقیت کې به هم کفاءت نه وی. دوهم دلیل دادې. چه په رقیت کې د ذلت معنی ده. او په حریت کې د عزت معنی ده. په دې وجه د کفاءت په حکم کې به ددې هم اعتبار کولې شی.

## په کفاءت کې د دین حیثیت

[1]) القول الراجح هو قول الطرفين رحمهما الله كذا فى البناية (٤\٦٢٤) وفتح القدير(٣\١٩١) والخانية (٣\١٦٣) وردالمحتار(٢\٣٤٦) نقلاً عن القول الراجح (١\٢٦١)-





قَالَ وَتُعْتَبَرُ أَيْضًا فِي الدِّينِ أَيِ الدِّيَانَةِ، وَهَذَا قَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُمَا اللَّهُ هُوَ الصَّحِيحُ[1] او کفاءت معتبر دې په دین کې یعنی په دیانت کې هم او دا قول د شیخینو دې دا صحیح ده لِأَنَّهُ مِنْ أَعْلَى الْمَفَاخِرِ، وَالْمَرْأَةُ تُعَيَّرُ بِفِسْقِ الزَّوْجِ فَوْقَ مَا تُعَيَّرُ بِضَعَةِ نَسَبِهِ ځکه چې دین د اعلی مفاخره ځنې دې او ښځې ته د خاوند په فاسق کیدو عار ور کولای شی زیات د دې نه چې د خاوند په کمتر نسب ورکولې شی

حل اللغة* ① الديانة: دینداری ② تعير: پیغوررور کولای شی ③ يصفع: په څپېړو وهلې شی ④ يسخر: توقې وړپورې کولای شی ⑤ الاسواق: جمع د سوق ،بازار ⑥ سكران: نشه ⑦ يلعب: بازي (لوبې) کوی

تشریح:- مصنف رحمه الله فرمائی. چه په دین کې هم کفاءت معتبر دې. علامه مرغینانی رحمه الله فرمائي. چه د دین نه مراد دیانت دې. یعنی تقوی ، صلاح، حسب، او مکارم اخلاق. ځکه چې دین په معنی د اسلام، خود مسلمه د نکاح لپاره شرط دې. او زموږ کلام هم په دې کې دې. چه د عقد د نفاذ نه روسته اولیاء ته د اعتراض حق حاصل وی. بهرحال په دیانت کې د کفاءت اعـ) لِأَنَّهُ لَا ثَبَاتَ لَهُ إِذِ الْمَالُ غَادٍ وَرَائِحٌ امام ابویوسف رحمه الله فرمائی چې په غنی کې کفاءت معتبر نه دې ځکه چې مال لره ثبات نشته سحر ځی مابنام راځی.

تشریح:-اوس پاتې شوه داخبره چې په غنی ، یعنی په صاحب نصاب کیدلوکې کفاءت معتبر دې او که نه؟ نود طرفینو رحمهما الله مذهب دادې. چه معتبر دې. نو که ښځه صاحب نصاب وی. نو سړې چې صرف د نفقه او مهر قدرت لری. ددې ښځې کفو نشی کیدلې. ځکه چې خلګ په مالداره کیدلو باندې فخر کوی. او په غریبئ باندې شرم محسوسوی. خو ابویوسف رحمه الله په غنی کې د کفاءت اعتبار نه کوی. ځکه چې مالداری یو داسې شی دې. چه دا نه ایساریږی. تلونکې راتلونکې شی دې. مال سهار راځی . مابنام ځی. نود داسې ناپائیداره شی اعتبار به نشی کیدلې.

## په کاروبارکې د کفاءت حکم

وَتُعْتَبَرُ فِي الصَّنَائِعِ وَهَذَا عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ وَمُحَمَّدٍ رَحِمَهُمَا اللَّهُ[2] او کفاءت معتبر دې په پیشی کې او دا د صاحبینو رحمهما الله په نزد ده. وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ فِي ذَلِكَ رِوَايَتَانِ وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ أَنَّهُ لَا تُعْتَبَرُ او د امام ابوحنیفه رحمه الله نه په دې کې دوې [دوه] روایتونه دی او د امام ابویوسف رحمه الله نه روایت دې چې په پیشه کې کفاءت معتبر نه دې إِلَّا أَنْ تَفْحُشَ كَالْحَجَّامِ وَالْحَائِكِ وَالدَّبَّاغِ مګر که ډیره کمتره وی لکه حجامت کول کپړه او څرمن له رنګ ورکول ( یا پخول)

حل اللغة* ① الصنائع: جمع د صنعة: پیشه کسب ② الحجام: حجامت کونکې ③ الحائك: جامو ته رنګ ورکونکې ④ الدباغ: څرمن ته رنګ ورکونکې ⑤ الخسيسة: سپکه ⑥ النفسية: دعزت پیشه]

تشریح:- په پیشه(کاروبار) کې کفاءت معتبر دې اوکه نه؟ په دې اړه کې د صاحبینو رحمهما الله مذهب دادې چه معتبر دې. اود امام صاحب رحمه الله نه دوې [دوه] روایتونه دی. د یو مطابق معتبردې. په بل کې معتبر نه دې. د امام ابویوسف رحمه الله نه هم یو روایت دادې. چه معتبر نه دې. خو که پیشه بیخی سپکه(ذلیله) وی. مثلاً د نې توب پیشه، یا د جولاګری ، یاد رنګ سازئ پیشه. نو په دې صورت کې به کفاءت معتبر وی..

وَجْهُ الِاعْتِبَارِ أَنَّ النَّاسَ يَتَفَاخَرُونَ بِشَرَفِ الْحِرَفِ وَيَتَعَيَّرُونَ بِدَنَاءَتِهَا د اعتبار وجه دا ده چې خلګ فخر کوی په عمده پیشی سره او عار محسوسوی د دې په کمتر کیدو سره وَجْهُ الْقَوْلِ الْآخَرِ أَنَّ الْحِرْفَةَ لَيْسَتْ بِلَازِمَةٍ وَيُمْكِنُ

[1]) القول الراجح هو قول الشيخين رحمهما الله كذا فى فتح القدير(٣\١٩٢) والعناية (٣\١٩٢) والخانية (١\١٦٣) والهندية (١\٢٩١) وردالمحتار(٢\٣٤٧) نقلاً عن القول الراجح (١\٢٦٢)_

[2]) القول الراجح هو قول الصاحبين رحمهما الله كذا فى فتح القدير(٣\١٩٣) والخانية (١\١٦٣) ومجمع الأنهر(١\٣٤٢) والهندية (١\٢٩٢) نقلاً عن القول الراجح (١\٢٦٤)-

التَّحَوُّلُ عَنِ الْخَسِيْسَةِ إِلَى النَّفِيْسَةِ مِنْهَا د دوهم وجه دا ده چي پيشه لازمه نه وي ممکن دی بدليدل د کمترې نه عمده پيشي ارخ ته.

تشريح:- په پيشه کي د کفاءت معتبر کيدلو وجه داده.چه خلګ په ښه پيشه باندې فخر کوی .او په ذليله پيشه باندې عار اوشرم محسوسوی .د دوهم قول وجه داده.چه پيشه لازم نه وی .د ادنی نه اعلی ارخ ته منتقل کيدل ممکن وی .نو کوم شی چي غير لازم وی .د هغې اعتبار نشی کيدلې.خو په دې باندې دا اشکال کيږی .چه فسق او فقر هم غير لازم دی .نو په ديانت اومالدارئ کي هم کفاءت معتبر کيدل پکار نه دی ؟ والله أعلم بالصواب

## د مهرمثل نه په کم باندې د بالغي ښځي خپله نکاح کول

قَالَ وَإِذَا تَزَوَّجَتِ الْمَرْأَةُ وَنَقَصَتْ عَنْ مَهْرِ مِثْلِهَا فَلِلْأَوْلِيَاءِ الْاِعْتِرَاضُ عَلَيْهَا عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ او هر کله چي واده اوکړو ښځي او کم ئ کړو خپل مهر د مثل نه نو اولياء ته حق دې په ښځه د اعتراض کاوه د امام ابوحنيفه رحمه الله په نزد حَتّٰى يُتِمَّ لَهَا مَهْرَ مِثْلِهَا أَوْ يُفَارِقَهَا (١)تر دې چي خاوند د دې مهر مثل پوره کړی او يا د دې نه جداشی وَقَالَا: لَيْسَ لَهُمْ ذٰلِكَ .وَهٰذَا الْوَضْعُ إِنَّمَا يَصِحُّ عَلٰى قَوْلِ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللهُ صاحبين رحمهما الله فرمائی چي اولياؤ ته د دې حق نشته او د مسئلې دا وضع به صحيح وی د امام محمد رحمه الله په قول علی اِعْتِبَارِ قَوْلِهِ الْمَرْجُوْعِ إِلَيْهِ فِي النِّكَاحِ بِغَيْرِ الْوَلِيِّ د دهٔ د مرجوع اليه قول په اعتبار سره د ولی نه بغير د نکاح په اړه کي وَقَدْ صَحَّ ذٰلِكَ وَهٰذِهِ شَهَادَةٌ صَادِقَةٌ عَلَيْهِ او دا رجوع په صحيح طور ثابت ده په کومه چي دا مسئله شهادت صادقه دې

حل اللغة:① يفارق: جلا کوی ② التسمية:نامداره کول،مقرر کول ③ غلاء: زياتوالي ④ الابراء: بری کول]

تشريح:- مسئله داده.چه يوې بالغي ښځي خپله نکاح د مهر مثل نه په کم باندې اوکړله.نود امام صاحب رحمه الله په نيز باندې اولياؤ ته د اعتراض حق حاصل دې.چه خاوند مهر مثل مکمل کړی .يا ئې جلا کړی .ګنی قاضی به د مرافعه (قاضی ته فيصله اوړل) نه روسته تفريق کوی .د صاحبينو رحمهما الله په نيز اولياؤ ته د اعتراض حق نشته.علامه مرغينانی رحمه الله فرمائی .چه د مسئلې دا وضع په دې خبره باندې دلالت کوی .چه امام محمد رحمه الله په ،نکاح بغير الولی ،کي د خپل قول نه رجوع کړې وه.د امام محمد رحمه الله مذهب دا وو.چه نکاح بغير الولی نه منعقد کيږی .بيا ئې ددې نه رجوع کړې وه.او فرمائيلی ئې وو.چه بغير د ولی نه نکاح منعقد کيږی .ددې وضع نه رجوع داسې معلومه شوه.چه صاحبينو رحمهما الله (چه پکي امام محمد رحمه الله هم دې)اوفرمائيل.چه اولياؤ ته د اعتراض حق نشته.ددې مطلب داشو.چه نکاح منعقد شوه.او په متن کي چي کوم صورت بيان شوې دې.هغه دادې.چه د ولی نه بغير ښځې نکاح کړې ده.نود مسئلې دا وضع د امام محمد رحمه الله په رجوع باندې رښتوني ګواهي ده.

لَهُمَا أَنَّ مَا زَادَ عَلَى الْعَشَرَةِ حَقُّهَا وَمَنْ أَسْقَطَ حَقَّهُ لَا يُعْتَرَضُ عَلَيْهِ كَمَا بَعْدَ التَّسْمِيَةِ د صاحبينو رحمهما الله دليل دا دې چي څهٔ په لس درهمه زيات دی دغه د ښځې حق دې او څوك چي خپل حق ساقط کړی اعتراض په نه وی لکه د تسميه نه

تشريح:- په اصل مسئله کي د صاحبينو رحمهما الله دليل دادې.چه دلسو درهمو پورې مهر خود شريعت حق دې.او ددې نه زياتې د ښځې حق دې.نو ښځې په مهر مثل کي کمی اوکړه.نو خپل حق ئې. ساقط کړو .او کوم کس چي خپل حق ساقط کړی .نو په ده باندې هيڅ اعتراض نه وی .دغه ډول دلته کي هم هيڅ اعتراض کول نه دی پکار.

وَلِأَبِي حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ أَنَّ الْأَوْلِيَاءَ يَفْتَخِرُوْنَ بِغَلَاءِ الْمَهْرِ وَيَتَعَيَّرُوْنَ بِنُقْصَانِهِ فَأَشْبَهَ الْكَفَاءَةَ او د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا

(١) القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في الخانية (١٦٤\١) نقلاً عن القول الراجح (٢٦٦\١)_



دې چي اولياء د مهرونو په ګران والی فخر کوی او په کميدوئ عار محسوسوی نو دا د کفاءت مشابه شوه بِخِلَافِ الْإِبْرَاءِ بَعْدَ التَّسْمِيَةِ، لِأَنَّهُ لَا يَتَعَيَّرُ بِهِ په خلاف د بری کاوه نو د تسمئ ته چي په دې سره عارنه شی محسوس کيدې.

تشريح:- د ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې.چه اولياء د خپل خاندانی ښځو په مهرونو باندې فخرکوی .او په کمو مهرونو باندې شرم محسوسوی .نو په مهرکي کمې کول،د کفو نه کيدلو مشابه شو.اود کفو نه کيدلو په صورت کي اولياء ته د اعتراض حق حاصل وی .نود مهر د کمی په صورت کي به هم د اعتراض حق حاصل وی.

او پاتې شو د نامداره کيدلو نه روسته بری کول،نو په دې کي اولياء شرم نه محسوسوی .ځکه چي دا خوهبه ده.په دې سره د اولياؤ پزه اوچتيږی .کښته کيږی نه.(يعنی عزت دې شرم نه دې..ازمترجم)

## پلار د صغيرې لور اوځوی نکاح د مهرمثل نه په کم اوبه زيات کولاې ئې

وَإِذَا زَوَّجَ الْأَبُ بِنْتَهُ الصَّغِيْرَةَ وَنَقَّصَ مِنْ مَهْرِهَا أَوِ ابْنَهُ الصَّغِيْرَ وَزَادَ فِي مَهْرِ امْرَأَتِهِ جَازَ ذٰلِكَ عَلَيْهِمَا او هر کله چي نکاح اوکړی پلار د خپلې وړې لور او کم ئ کړو د مهر مثل د دې نه يائ واده اوکړو د خپل وړوکی ځوئی او زيات ئ کړو د دهٔ د ښځې مهر نو دا جائز دی د دې دواړو په حق کي وَلَا يَجُوْزُ ذٰلِكَ لِغَيْرِ الْأَبِ وَالْجَدِّ وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ (١) او نه دی جائز دا د پلار نيکه نه د علاوه د پاره او دا د امام ابوحنيفه رحمه الله په نزد ده

حل اللغة:① الحط:کموالي ② يتغابن: برداشت کوی ،زغمی ③ النظر:شفقت ④ القرابة: خپلولي]

تشريح:- صورت د مسئلې دادې.چه پلار د خپلې صغيرې لور نکاح اوکړه.او ددې مهر ئې د مهرمثل نه کم مقرر کړو.يا پلار دخپل صغير ځوی نکاح اوکړه.او دده ښځې مهر ئې د مهرمثل نه زيات مقررکړو.اودا کمې زياتې معلوم نه دې.بلکه د غبن فاحش د قبيلې ځنې دې.نود امام صاحب رحمه الله په نيز به په صغير او صغيره دواړو باندې دا نکاح نافذ وی .خوکه د پلار نيکه نه علاوه بل چا داسې اوکړل.نو نکاح به صحيح نه وی

وَقَالَا: لَا يَجُوْزُ الْحَطُّ وَالزِّيَادَةُ إِلَّا بِمَا يَتَغَابَنُ النَّاسُ فِيْهِ)،او صاحبين رحمهما الله فرمائی چي جائز نه دې کمې او زياتې مګر دومره څومره چي عام خلګ برداشت کوی په دې کي وَمَعْنٰى هٰذَا الْكَلَامِ أَنَّهُ لَا يَجُوْزُ الْعَقْدُ عِنْدَهُمَا؛او د دې کلام مطلب دا دې چي نه دې جائز عقد د صاحبينو رحمهما الله په نزه باندې لِأَنَّ الْوِلَايَةَ مُقَيَّدَةٌ بِشَرْطِ النَّظَرِ فَعِنْدَ فَوَاتِهِ يَبْطُلُ الْعَقْدُ ځکه چي ولايت مقيد دې پشرط د شفقت نو د دې په فوت کيدو سره باطليږی عقد وَهٰذَا لِأَنَّ الْحَطَّ عَنْ مَهْرِ الْمِثْلِ لَيْسَ مِنَ النَّظَرِ فِي شَيْءٍ كَمَا فِي الْبَيْعِ، او دا ځکه چي د مهر مثل نه کمول خو د شفقت خبره نه ده لکه په بيع کي وَلِهٰذَا لَا يَمْلِكُ ذٰلِكَ غَيْرُهُمَا په دې وجه سره د پلار نيکه نه علاوه د دې مالك نه وی

تشريح:- اود صاحبينو رحمهما الله په نيز که کمې زياتې د غبن فاحش په طور وی .نو جائز نه دی .اوکه د غبن يسير په طور دې.نو نکاح جائز ده.علامه مرغينانی رحمه الله [ومعنى هذا الكلام] سره د صاحبينو رحمهما الله د قول[لايجوز] مراد بيانوی .ځکه چي د صاحبينو رحمهما الله د قول لايجوز يو مطلب خودا کيدلې شی .چه اصل نکاح درست وی .خو کمې زياتې درست نه وی .دا به د مهرمثل ارخ ته واپس کولې شی .صاحب دهدايه رحمه الله فرمائی .چه د صاحبينو رحمهما الله د قول مراد دادې.چه ددوی په نيز دسره نکاح جائز نه ده.

د صاحبينو رحمهما الله د دليل حاصل دادې.چه ولايت د شفقت شرط سره مقيد دې.نود شفقت په فوت کيدلو سره به ولايت پاته نه پاتې کيږی .نو اوس به مطلب داوی .چه پلار بغير د ولايت نه نکاح اوکړه.او بغير د ولايت نه نکاح باطل وی .نودا نکاح به هم باطل وی .او پاتې شوه داخبره چي شفقت څنګه فوت شو.نو عرض

(١) القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في الهندية (٢٩٤\١) و البحرالرائق (٢٣٦\٣) والخانية (١٦٦\١) وتبيين الحقائق (١٣١\٢) نقلاً عن القول الراجح (٢٦٧\١)-

التَّحَوُّلَ عَنْ الْخَسِيسَةِ إِلَى النَّفِيسَةِ مِنْهَا دوهم وجه دا ده چې پیشه لازمه نه وي ممکن دی بدلیدل د کمترې نه عمده پیشې ارخ ته.

تشریح:- په پیشه کې د کفاءت معتبر کیدلو وجه داده.چه خلگ په ښه پیشه باندې فخر کوی .او په ذلیله پیشه باندې عار آوشرم محسوسوی .د دوهم قول وجه داده.چه پیشه لازم نه وی .د ادنی نه اعلی ارخ ته منتقل کیدل ممکن وی .نو کوم شی چې غیر لازم وی .د هغې اعتبار نشی کیدلې.خو په دې باندې دا اشکال کیږی .چه فسق او فقر هم غیر لازم دی .نو په دیانت اومالداری کې هم کفاءت معتبر کیدل پکار نه دی ؟ والله أعلم بالصواب

## د مهرمثل نه په کم باندې د بالغې ښځې خپله نکاح کول

قَالَ وَإِذَا تَزَوَّجَتْ الْمَرْأَةُ وَنَقَصَتْ عَنْ مَهْرِ مِثْلِهَا فَلِلْأَوْلِيَاءِ الِاعْتِرَاضُ عَلَيْهَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله او هر کله چې وادهٔ اوکړو ښځې او کم یې کړو خپل مهر د مثل نه نو اولیاء ته حق دې په ښځه د اعتراض کاوه د امام ابوحنیفه رحمه الله په نزد حَتَّى يُتِمَّ لَهَا مَهْرَ مِثْلِهَا أَوْ يُفَارِقَهَا (١) تر دې چې خاوند د دې مهر مثل پوره کړی او یا د دې نه جداشی وَقَالَا: لَيْسَ لَهُمْ ذَلِكَ .وَهَذَا الْوَضْعُ إِنَّمَا يَصِحُّ عَلَى قَوْلِ مُحَمَّدٍ رحمه الله صاحبین رحمهما الله فرمائی چې اولیاؤ ته د دې حق نشته او د مسئلې دا وضع به صحیح وی د امام محمد رحمه الله په قول عَلَى اعْتِبَارِ قَوْلِهِ الْمَرْجُوعِ إِلَيْهِ فِي النِّكَاحِ بِغَيْرِ الْوَلِيِّ د ده د مرجوع الیه قول په اعتبار سره د ولی نه بغیر د نکاح په اره کې وَقَدْ صَحَّ ذَلِكَ وَهَذِهِ شَهَادَةٌ صَادِقَةٌ عَلَيْهِ او دا رجوع په صحیح طور ثابت ده په کومه چې دا مسئله شهادت صادقه دی

حل اللغة: ① یفارق: جلا کوی ② التسمیة:نامداره کول،مقرر کول ③ غلاء: زیاتوالې ④ الابراء: بری کول]

تشریح:- مسئله داده.چه یوې بالغې ښځې خپله نکاح د مهر مثل نه په کم باندې اوکړله.نو د امام صاحب رحمه الله په نیز باندې اولیاؤ ته د اعتراض حق حاصل دې.چه خاوند مهر مثل مکمل کړی .یا ئې جلا کړی .ګنې قاضی به د مرافعه (قاضی ته فیصله اوړل) نه روسته تفریق کوی .د صاحبینو رحمهما الله په نیز اولیاؤ ته د اعتراض حق نشته.علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی .چه د مسئلې دا وضع په دې خبره باندې دلالت کوی .چه امام محمد رحمه الله په ،نکاح بغیر الولی ،کې د خپل قول نه رجوع کړې وه.د امام محمد رحمه الله مذهب دا وو.چه نکاح بغیر الولی نه منعقد کیږی .بیا ئې ددې نه رجوع کړې وه.او فرمائیلی ئې وو.چه بغیر د ولی نه نکاح منعقد کیږی .ددې وضع نـه رجـوع داسـې معلومـه شـوه.چـه صـاحبینو رحمهما الله (چـه پـکـې امـام محـمـد رحمه الله هم دی)اوفرمائیل.چه اولیاؤ ته د اعتراض حق نشته.ددې مطلب داشو.چه نکاح منعقد شوه.او په متن کې چې کوم صورت بیان شوې دې.هغه دادې.چه د ولی نه بغیر ښځې نکاح کړې ده.نو د مسئلې دا وضع د امام محمد رحمه الله په رجوع باندې رښتونې ګواهی ده.

لَهُمَا أَنَّ مَا زَادَ عَلَى الْعَشَرَةِ حَقُّهَا وَمَنْ أَسْقَطَ حَقَّهُ لَا يُعْتَرَضُ عَلَيْهِ كَمَا بَعْدَ التَّسْمِيَةِ د صاحبینو رحمهما الله دلیل دا دې چې څهٔ په لس درهمه زیات دی دغه د ښځې حق دې او څوك چې خپل حق ساقط کړی اعتراض په نه وی لکه د تسمیه نه

تشریح:- په اصل مسئله کې د صاحبینو رحمهما الله دلیل دادې.چه دلسو درهمو پورې مهر خود شریعت حق دې.او ددې نه زیاتې د ښځې حق دې.نو ښځې په مهر مثل کې کمی اوکړه.نو خپل حق ئې. ساقط کړو .او کوم کس چې خپل حق ساقط کړی .نو په ده باندې هیڅ اعتراض نه وی .دغه ډول دلته کې هم هیڅ اعتراض کول نه دی پکار.

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله أَنَّ الْأَوْلِيَاءَ يَفْتَخِرُونَ بِغَلَاءِ الْمَهْرِ وَيَتَعَيَّرُونَ بِنُقْصَانِهِ فَأَشْبَهَ الْكَفَاءَةَ او د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دا

(١) القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في الخانية (١\١٦٤) نقلاً عن القول الراجح (١\٢٦٦)_



دې چې اولیاء، د مهرونو په ګران والی فخر کوی او په کمیدوئ عار محسوسوی نو دا د کفاءت مشابه شوه بِخِلَافِ الْإِبْرَاءِ بَعْدَ التَّسْمِيَةِ، لِأَنَّهُ لَا يَتَعَيَّرُ بِهِ په خلاف د بری کاوه نو د تسمیې ته چې په دې سره عارنه شی محسوس کیدې.

تشریح:- د ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادې.چه اولیاء د خپل خاندانی ښځو په مهرونو باندې فخرکوی .او په کمو مهرونو باندې شرم محسوسوی .نو په مهرکې کمې کول،د کفو نه کیدلو مشابه شو.اود کفو نه کیدلو په صورت کې اولیاء ته د اعتراض حق حاصل وی .نود مهر د کمی په صورت کې به هم د اعتراض حق حاصل وی.

او پاتې شو د نامداره کیدلو نه روسته بری کول،نو په دې کې اولیاء شرم نه محسوسوی .ځکه چې دا خوهبه ده.په دې سره د اولیاؤ پزه اوچتیږی .کښته کیږی نه.(یعنی عزت دې شرم نه دې...ازمترجم)

## پلار د صغیرې لوراوځوی نکاح د مهرمثل نه په کم اوپه زیات کولای شی

وَإِذَا زَوَّجَ الْأَبُ بِنْتَهُ الصَّغِيرَةَ وَنَقَصَ مِنْ مَهْرِهَا أَوْ ابْنَهُ الصَّغِيرَ وَزَادَ فِي مَهْرِ امْرَأَتِهِ جَازَ ذَلِكَ عَلَيْهِمَا او هر کله چې نکاح اوکړی پلار د خپلې وړې لور او کم یې کړو د مهر مثل د دې نه یائې وادهٔ اوکړو د خپل وړوکی ځوئی او زیات ئې کړو د ده د ښځې مهر نو دا جائز دی د دې دواړو په حق کې وَلَا يَجُوزُ ذَلِكَ لِغَيْرِ الْأَبِ وَالْجَدِّ وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله (١) او نه دی جائز دا د پلار نیکه نه د علاوه د پاره او دا د امام ابوحنیفه رحمه الله په نزد ده

حل اللغة: ① الحط:کموالې ② یتغابن: برداشت کوی ،زغمی ③ النظر:شفقت ④ القرابة: خپلولې]

تشریح:- صورت د مسئلې دادې.چه پلار د خپلې صغیرې لور نکاح اوکړه.او ددې مهر ئې د مهرمثل نه کم مقرر کړو.یا پلار دخپل صغیر ځوی نکاح اوکړه.او دده ښځې مهر ئې د مهرمثل نه زیات مقررکړو.اودا کمې زیاتې معلوم نه دې.بلکه د غبن فاحش د قبیلې څنې دې.نود امام صاحب رحمه الله په نیز به په صغیر او صغیره دواړو باندې دا نکاح نافذ وی .خوکه د پلار نیکه نه علاوه بل چا داسې اوکړل.نو نکاح به صحیح نه وی

وَقَالَا: لَا يَجُوزُ الْحَطُّ وَالزِّيَادَةُ إِلَّا بِمَا يَتَغَابَنُ النَّاسُ فِيهِ)،او صاحبین رحمهما الله فرمائی چې جائز نه دې کمې او زیاتې مګر دومره څومره چې عام خلګ برداشت کوی په دې کې وَمَعْنَى هَذَا الْكَلَامِ أَنَّهُ لَا يَجُوزُ الْعَقْدُ عِنْدَهُمَا او د دې کلام مطلب دا دې چې نه دې جائز عقد د صاحبینو رحمهما الله په نزه باندې لِأَنَّ الْوِلَايَةَ مُقَيَّدَةٌ بِشَرْطِ النَّظَرِ فَعِنْدَ فَوَاتِهِ يَبْطُلُ الْعَقْدُ ځکه چې ولایت مقید دې پشرط د شفقت نو د دې په فوت کیدو سره باطلیږی عقد وَهَذَا لِأَنَّ الْحَطَّ عَنْ مَهْرِ الْمِثْلِ لَيْسَ مِنْ النَّظَرِ فِي شَيْءٍ كَمَا فِي الْبَيْعِ، او دا ځکه چې د مهر مثل نه کمول خو د شفقت خبره نه ده لکه په بیع کې وَلِهَذَا لَا يَمْلِكُ ذَلِكَ غَيْرُهُمَا په دې وجه سره د پلار نیکهٔ نه علاوه د دې مالك نه وی

تشریح:- اود صاحبینو رحمهما الله په نیز که کمې زیاتې د غبن فاحش په طور وی .نو جائز نه دی .اوکه د غبن یسیر په طور دې.نو نکاح جائز ده.علامه مرغینانی رحمه الله [ومعنى هذا الكـلام] سره د صاحبینو رحمهما الله د قول[لایجـوز] مراد بیانوی .ځکه چې د صاحبینو رحمهما الله د قول لایجوز یو مطلب خودا کیدلې شی .چه اصل نکاح درست وی .خو کمې زیاتې درست نه وی .دا به د مهرمثل ارخ ته واپس کولې شی .صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی .چه د صاحبینو رحمهما الله د قول مراد دادې.چه ددوی په نیز دسره نکاح جائز نه ده.

او د صاحبینو رحمهما الله د دلیل حاصل دادې.چه ولایت د شفقت شرط سره مقید دې.نود شفقت په فوت کیدلو سره به ولایت پاته نه پاتې کیږی .نو اوس به مطلب داوی .چه پلار بغیر د ولایت نه نکاح اوکړه.او بغیر د ولایت نه نکاح باطل وی .نودا نکاح به هم باطل وی .او پاتې شوه داخبره چې شفقت څنګه فوت شو.نو عرض

(١) القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في الهندية (١\٢٩٤) و البحرالرائق (٣\٢٣٦) والخانية (١\١٦٦) وتبيين الحقائق (٢\١٣١) نقلاً عن القول الراجح (١\٢٦٧)-

دادي.چه د صغيره په مهر كي د معمول (رواج) نه زيات كمي كول،يا د صغير د ښځي په مهرمثل كي غيرمعمولي زياتوالي كول،څنګه شفقت دي؟ اودا داسي ده. لكه چي پلار د صغير يا صغيره مال خرڅ كړي په غبن فاحش سره په كم قيمت باندي.يا ددوى لپاره څه واخلي په زيات قيمت باندي.نودا بيع بالاتفاق جائز نه ده.نو نكاح هم جائز كيدل نه دي پكار. او هم دا وجه ده.چه د پلار نيكه نه علاوه كه بل چا داسي نكاح اوكړه.نو په اتفاق جائز نه ده.نو كه پلار نيكه ني اوكړي .نو بيا هم جائز كيدل پكار نه دي.

| |
|---|
| **ولأبي حنيفة** رحمه الله **أن الحكم يدار على دليل النظر وهو قرب القرابة** د امام ابوحنيفه رحمه الله د ليل دا دي چي حكم دائر شوي دي په دليل د نظر او دغه قرب د قرابت دي **وفي النكاح مقاصد تربو على المهر** او په نكاح كي څه مقاصد داسي دي كوم چي د مهر نه زيات دي ، **أما المالية فهي المقصود في التصرف المالي والدليل عدمناه في حق غيرهما** پاتي شو ماليت نو دغه مقصود دي په تصرف مالي كي او دليل د نظر لره موږ معدوم موندلي دي د پلار نيكه نه په علاوه كي |

تشريح:-د امام صاحب رحمه الله دليل دادي.چه نظر او شفقت باطني امر دي.په دي خو حكم لګول محال امر دي.نود شفقت په دليل اوعلامت به حكم لګولي شي .اود شفقت دليل دي قرب قرابت(يعني نژدي رشته داري )نو موږ وايو.چه په پلار اونيكه كي د شفقت دليل موجود دي.نوپه دي به د نكاح د جواز حكم لګولي شي .اود پلار نيكه نه علاوه كي چونكه دليل نظر يعني قرب قرابت موجود نه دي.په دي وجه به ددوى په تړلي شوي نكاح باندي دجواز حكم نشي لګولي.او دا ونيل.چه په مهرمثل كي كمى كول،هيڅ شفقت نه دي.ددي خواب دادي.چه په نكاح كي صرف مهر مطلوب نه وى .بلكه ددي نه علاوه نور هم ډيرمقصدونه وى .چه د مهر نه غټ وى .نو ډيركرته د ذوم نورو كمالاتو ته كتلي شي .نو دده د كمالاتو په وجه د مهركموالي برداشت كوني شي .اودا عدم شفقت نه دي.بلكه عين شفقت دي.

اود صاحبينو رحمهما الله نكاح په عقدبيع باندي قياس كول، قياس مع الفارق، دي.څكه چي په بيع كي مال مقصود وى .نوكه په دي كي غبن فاحش اوكړي .نو هيڅ شفقت پاتي نشو.ددي په خلاف نكاح ده.چه په دي كي صرف مال مطلوب نه وى .بلكه نورهم ډير مقصدونه وى .چه د مال نه غټ وى .والله اعلم بالصواب

### د صغيري لورنكاح د غلام.اود ځوى نكاح د وينځي سره دكولوحكم

| |
|---|
| **ومن زوج ابنته وهي صغيرة عبدا أو زوج ابنه وهو صغير أمة فهو جائز** چا چي نكاح اوكړله، د خپلي لور چي وړه وه د چاغلام سره او ياني واده اوكړو د خپل خوئى چي وړوكي و، د وينځي سره نو جائز دي **قال رضي الله عنه وهذا عند أبي حنيفة أيضا**(۱)علامه مرغيناني فرمائى . چي دا هم د امام ابوحنيفه رحمه الله په نزد ده **لأن الإعراض عن الكفاءة لمصلحة تفوقها** څكه چي د كفاءت نه اعراض كاوه د څه مصلحت په وجه دي كوم چي د كفاءت نه زيات دي |

تشريح:- صورت د مسئلي دادي.چه پلار د خپلي صغيره لور نكاح غلام سره،يا د صغيرځوى نكاح د وينځي سره اوكړي .نو په دي اړه كي اختلاف دي.د ابوحنيفه رحمه الله په نيز جائز ده. دليل دا دي.چه د پلار په غيركفو كولوكي هيڅ باك نشته.

| |
|---|
| **وعندهما هو ضرر ظاهر لعدم الكفاءة فلا يجوز** او د صاحبينو رحمهما الله په نزد دا ښكاره ضرر دي د عدم كفاءت په وجه نو چه د غيركفو كي نكاح دا جائز نه دى . |

۱) القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في الهندية (۲۹۴\۱) والخانية (۱۶۶\۱) والبحر الرائق (۲۳۶\۳) نقلاً عن القول الراجح [illegible]-



تشريح:- په زير بحث مسئله كي د صاحبينو مذهب عدم جواز دي دليل دادي.چه په غيركفو كي نكاح كول، ضرر ښكاره كوى .نودا نكاح به ناجائز وى .

## فصل في الوكالة بالنكاح وغيرها

ژباړه:- دا فصل د وكالت بالنكاح وغيره په احكامو كښي دي.

تشريح:- دا فصل د وكالت اود غيروكالت په حكم كي دي.د غيروكالت نه مراد د ولى او فضولى نكاح ده.څكه چي په دي فصل كي د وكيل د احكامو نه علاوه د فضولى او ولى احكام هم ذكر دى .او وكالت خو په حقيقت كي دولايت فرع ده.څكه چي څنګه د ولى تصرف په مولا عليه نافذ كيږي .دغه ډول د وكيل تصرف هم په موكل باندي نافذ كيږي .

### په نكاح كي د وكالت حكم

| |
|---|
| **ويجوز لابن العم أن يزوج بنت عمه من نفسه** جائز دى د اكا خوئى لره دا چي په نكاح كړى د خپل اكا لور د خان سره **وقال زفر** رحمه الله **لا يجوز** امام زفر رحمه الله فرمائى چي جائز نه دى |

حل اللغة:① معبر:تعبيركونكي ② التمانع: منع كول ③ الشطرين:تثنيه د شطر،جزء برخه ]

تشريح:- صورت د مسئلي دادي.چه د اكا زوي ولي جوړشو.اوخپله نكاح ني د خپل اكا لور سره اوكړه.حالانكه دا انجلي صغيره ده.او دده نه علاوه بل څوك ولى هم نشته. مثلاً ده اوونيل.چه،ګواه اوسه،ما خپله نكاح فلانئ انجلي سره اوكړه. چي د فلانكى د خوى لورده، نو زموږ په نيز جائز ده.او امام شافعي رحمه الله هم دجواز قائل دي.خوامام زفر رحمه الله دي ته ناجائز وائي .

| |
|---|
| **وإن أذنت المرأة للرجل أن يزوجها من نفسه فعقد بحضرة شاهدين جاز** هر كله چي اجازت وركړو يوي ښځي يو سړى ته چي دا ځانته په نكاح كړى نو دهٔ د دوو ګواهانو په حضور نكاح اوكړو نو جائز دي |

تشريح:- دوهم صورت دادي.چه يوي ښځي يو سړي وكيل جوړكړو.چه زما نكاح د خپل خان سره اوكړه.وكيل د دوي [دوه] ګواهانو په موجودګئ كي عقد د نكاح اوكړو.نو دا صورت زموږ په نيز جائز دي.

| |
|---|
| **وقال زفر والشافعي** رحمهما الله**: لا يجوز. لهما أن الواحد لا يتصور أن يكون مملكا ومتملكا كما في البيع** او زفر او شافعي فرمائى چي جائز نه دي د دوى دليل دا دي چي د يوسړى مملك او متملك كيدل غير متصور دى لكه چي په بيع كي دى **إلا أن الشافعي** رحمه الله **يقول في الولي ضرورة، لأنه لا يتولاه سواه، ولا ضرورة في حق الوكيل** مګر دا چي امام شافعي رحمه الله فرمائى چي په ولى كي اړتيا دي څكه چي د دهٔ نه سيوائ بل څوك ولى نشته او په واكدار كي هيڅ اړتيا نشته |

تشريح:- د امام زفر اوامام شافعي رحمهما الله په نيز ناجائز دي.د امام زفر اوامام شافعي رحمهما الله دليل دادي.چه يوكس د يوڅيز په يوه زمانه كي مملك او متملك نشي جوړيدلي.يعني مالك جوړونكي او ملك حاصلونكي وى .داسي نشي كيدلي.لكه څنګه چي په بيع كي نشي كيدلي.او دلته كي هم دغه خرابى ده.څكه چي د اكا زوي د خپل اړخه مالك جوړيدونكي دي.اود انجلي د اړخه ولى جوړيږي .نو مالك جوړونكي دي.نو مملك او متملك دواړه شو.اودا ناجائز دى .څكه دا عقد هم ناجائز دي.دغه په دويمه مسئله كي سړي چونكه ناكح دي.نو مالك جوړونكي دي.او چونكه د ښځي داړخه وكيل دي.څكه مالك جوړونكي هم شو.خو امام شافعي رحمه الله فرمائى .چه په ولى كي چونكه اړتيا دي.څكه چي دده نه علاوه دوهم ولى نشته.په دي وجه رومبي صورت جائز اوګرځولي شو.او په وكيل كي څه اړتيا نشته.څكه چي دده نه علاوه بل څوك وكيل جوړيدلي شي .په دي وجه دا صورت ناجائز دي.

| |
|---|
| **ولنا أن الوكيل في النكاح سفير ومعبر، والتمانع في الحقوق دون التعبير** موږ دليل دا دي چي په نكاح كي واكدار |

محض معبر او سفير وی او منافات په حقوقو کي دې نه چې په تعبير کي وَلَاتَرْجِعُ الْحُقُوقُ اِلَيْهِ، بِخِلَافِ الْبَيْعِ،لِأَنَّهُ مُبَاشِرٌحَتّٰى رَجَعَتِ الْحُقُوقُ اِلَيْهِ او نه راجع کیږي حقوق په نکاح کښې واکدار اړخ ته په خلاف دَ بيع نه ځکه چې واکدار عاقد دې تر دې چې دَ بيع حقوق واکدار اړخ ته راجع کيږي وَاِذَا تَوَلّٰى طَرَفَيْهِ فَقَوْلُهُ زَوَّجْتُ يَتَضَمَّنُ الشَّطْرَيْنِ فَلَا يَحْتَاجُ اِلَى الْقَبُوْلِ او هر کله چې دَنکاح دَ دواړو طرفونو ولی دې نو دَ ده قول زَوَّجْتُ به دواړو جزونو لره متضمن وی او دَ قبول محتاج به نه وی .

**تشریح:-** زموږ دليل دادې.چه په نکاح کي وکيل صرف تعبيرکونکې او سفير وی .ذمه دار نه وی .او منافات په حقوقو کي وی .په تعبير کي نه وی .په حقوقو کي منافات دادې.چه يوکس مطالب او مطالَب دواړه وی .مملك اومتملك دواړه وی .مخاصِم اومخاصَم دواړه وی .خو په تعبير کي منافات نشته.چه د ښځې د اړخه د مالك جوړولې والا الفاظ وائی .اود خپل اړخه د مالك جوړولو والا الفاظ وائی .ددې په خلاف بيع ده.ځکه چې په بيع کي وکيل عاقد وی .ځکه چې د بيع حقوق وکيل اړخ ته واپس کيږي .د موکل اړخ ته نه واپس کيږي .او هرکله چې دا ثابته شوه.چه يوکس د طرفينو متولی جوړيدلې شی .نود سړی [زوجت] قول به،ايجاب اوقبول دواړوته ګډ وی .د قبول لپاره به د خانله کلام اړتيا نه وی .ځکه چې هرکله يو کس د دوې [دوه] کسانو قائم مقام کيدلې شی .نو دده عبارت به هم د.دوې [دوه] عبارتونو قائم مقام وی .

## د مولا د اجازت نه بغير د غلام او وينځې نکاح

قَالَ وَتَزْوِيجُ الْعَبْدِ وَالْأَمَةِ بِغَيْرِ اِذْنِ مَوْلَاهُمَا مَوْقُوفٌ فَاِنْ اَذِنَ الْمَوْلٰى جَازَ، وَاِنْ رَدَّهُ بَطَلَ دَ غلام او وينځې نکاح کول بغير د اذن د مولی نه موقوف دې که اقاور ته اجازت ور کړو نو جائز دې او ردې کړو نو باطل به شي وَكَذٰلِكَ لَوْزَوَّجَ رَجُلٌ اِمْرَأَةً بِغَيْرِ رِضَاهَا اَوْرَجُلًا بِغَيْرِ رِضَاهُ وَهٰذَا عِنْدَنَا دارنګ که چا (فضولی ) دَ يوې ښځې نکاح بغير دَ هغې د رضانه او کړو يا د يو سړی بغير د هغه دَ رضا نه او دا زموږ په نيز ده فَاِنَّ كُلَّ عَقْدٍ صَدَرَ مِنَ الْفُضُولِيِّ وَلَهُ مُجِيزٌ اِنْعَقَدَ مَوْقُوفًا عَلَى الْاِجَازَةِ ځکه هر هغه عقد چې دَ فضولی نه صادر شو، او دَ ده دَ پاره څوك مجيز وه نو موقوف به تړلې شی په اجازت باندې

**حل اللغة:** ① **الفضولی:** اجنبی سړې چې متولی نه وی ② **يتراخی:** روستو کيږي ]

**تشریح:-** مسئله داده.چه د غلام او وينځې د مولا د اجازت نه بغير نکاح کول به موقوف وی .که مولا اجازت ورکړو.نو نافذ به وی .او که اجازت نې ورنکړو.نو باطل به وی . دوهم صورت دادې.چه يوسړی د بل کس نکاح بغير دده د اجازته اوکړه.ياد يوې ښځې نکاح نې بغير ددې د اجازته اوکړه. نو زموږ په نيز جائز ده.اود نکاح نفاذ به په اجازت باندې موقوف وی .زموږ په نيز ضابطه داده.چه هرهغه عقد چې د فضولی نه صادرشي .او په مجلس کي څوك د ايجاب قبلولو والا موجود وی .که دا قبلونکې دوهم فضولی وی .اوکه وکيل يا اصيل وی .نودا نکاح به په اجازت باندې موقوف منعقد وی .

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ: تَصَرُّفَاتُ الْفُضُولِيِّ كُلُّهَا بَاطِلَةٌ لِأَنَّ الْعَقْدَ وُضِعَ لِحُكْمِهِ او امام شافعی رحمه الله فرمائی چې دَ فضولی واړه تصرفات باطل دی ځکه چې عقد وضع شوې دې دَ حکم دَ عقد د پاره وَالْفُضُولِيُّ لَا يَقْدِرُ عَلٰى اِثْبَاتِ الْحُكْمِ فَيَلْغُو او فضولی په اثبات دَ حکم قادر نه دې په دې وجه به لغوه وی

**تشریح:-** د امام شافعی رحمه الله مذهب دادې.چه د فضولی واړه تصرفات باطل دی .د امام شافعی رحمه الله دليل دا دې.چه عقد ،د عقد حکم ثابتولو لپاره وضع شوې دې.او فضولی د حکم په اثبات باندې قادر نه وی .نو دده کلام به لغو وی .

وَلَنَا اَنَّ رُكْنَ التَّصَرُّفِ صَدَرَ مِنْ اَهْلِهِ مُضَافًا اِلٰى مَحَلِّهِ، وَلَا ضَرَرَ فِي انْعِقَادِهِ فَيَنْعَقِدُ مَوْقُوفًا زموږ دليل دا دې چې رکن دَ تصرف دَ اهل تصرف نه صادر شوې دې مضاف شوې خپل محل اړخ ته او دَ دې په تړلې کيدو کي څه



نقصان هم نشته په دې وجه به موقوف تړلې وی حَتّٰى اِذَا رَأَى الْمَصْلَحَةَ فِيهِ يُنَفِّذُهُ، وَقَدْ يَتَرَاخٰى حُكْمُ الْعَقْدِ عَنِ الْعَقْدِ تر دې چې که مصلحت پکي او وينی نو نافذ د کړی او حکم دَ عقد کله دَ عقد نه موخر هم وی .

**تشریح:-** زموږ دليل دادې.چه رکن د تصرف،يعنی ايجاب اوقبول دده د اهل نه صادر شوې دې.يعنی دعاقل بالغ نه، اومنسوب دې محل د عقد اړخ ته.يعنی داسې ښځې اړخ ته منسوب دې.چه دا دمحرماتو څخه نه ده.او ددې عقد په منعقد کولوکي څه نقصان هم نشته.ځکه چې دا عقد به موقوفاً منعقد وی.که مناسب اوګڼړی .نو نافذ به نې کړی .ګنی رد به نې کړی .د امام شافعی رحمه الله دليل چې فضولی دحکم په اثبات باندې قادر نه وی .ددې ځواب دادې.چه دلته کي حکم معدوم نه دې.بلکه د اجازته پورې موخر شوې دې.اوحکم د عقد ،عقد نه موخر کيدلې شی .لکه څنګه چې په بيع، بشرط الخيار، کي کيږي .ځکه چې ددې بيع لزوم او نفاذ د خيار د سقوطه پورې موخر شو. والله أعلم بالصواب

## د دواړه اړخه د يوکس فضولی کيدل

وَمَنْ قَالَ اشْهَدُوْا اَنِّىْ قَدْ تَزَوَّجْتُ فُلَانَةَ فَبَلَغَهَا فَاَجَازَتْ فَهُوَ بَاطِلٌ او چا چې او وې خلګو ګواه شی ما دَ فلانی ښځې سره نکاح او کړو بيا هغې ته خبر او رسيدو نو هغې نکاح جائز کړو نو دغه باطل دې وَاِنْ قَالَ اٰخَرُ اشْهَدُوْا اَنِّىْ قَدْ زَوَّجْتُهَا مِنْهُ فَبَلَغَهَا الْخَبَرُ فَاَجَازَتْ جَازَ وکه (په دې مجلس کي ) بل چا اووې خلګو ګواه شی ماهغه ښځه فلانی ته په نکاح ورکړله. بيا هغې ته خبر اورسيدو او هغې نکاح جائز کړو نو جائز دې وَكَذٰلِكَ اِنْ كَانَتِ الْمَرْأَةُ هِيَ الَّتِىْ قَالَتْ جَمِيعَ ذٰلِكَ وَهٰذَا عِنْدَ اَبِىْ حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ رحمهما الله او دغه ډول ده که دا هر څه ښځې ونيلی وی او دا دَ طرفينو رحمهما الله په نزد ده وَقَالَ اَبُوْيُوْسُفَ رَحِمَهُ اللهُ: اِذَا زَوَّجَتْ نَفْسَهَا غَائِبًا فَبَلَغَهُ فَاَجَازَ جَازَ امام ابويوسف رحمه الله فرمائی چې هرکله ښځې خپل نکاح دَ غائب سړی سره اوکړو بياهغه ته خبر اورسيدو او هغه دا نکاح جائز کړو نو جائز دې.

**تشریح:-** صورت د مسئلې دادې.چه يوکس دوې [دوه] سړی ګواهان جوړکړل.او وې ونيل چه،ما د فلانی ښځې سره نکاح اوکړه.خو په دې مجلس کي د ښځې د اړخه هيڅ چا قبول نکړه.ددې نه روسته ښځې ته ددې نکاح خبر اورسيدلو.ښځې اجازت ورکړو.نود طرفينو رحمهما الله په نيز دا نکاح باطل ده.اود ابويوسف رحمه الله په نيزجائز ده.اوکه د ايجاب هم په دې مجلس کي دوهم کس اووئيل.چه،ته ګواه اوسه.ما هغه ښځه ددې سړی په نکاح کي ورکړه، يا نې داسې اووئيل.چه،ما دهغه ښځې د اړخه قبول کړه،بيا دغه ښځې ته د نکاح اطلاع ملاؤشوه.اودا نکاح نې جائز اوګرخوله.نودا نکاح به جائز وی .

[1] په دې دواړو مسئلوکي توپير دادې.چه په ړومبۍ مسئله کي مجيز نشته.نو نکاح به باطل وی . او موقوف به نه وی .او په دويمه مسئله کي مجيزموجود دې.نو نکاح به موقوف وی .ځکه چې د فضولی نکاح د موقوفاً منعقد کيدلو شرط دادې.چه د عقد په مجلس کي مجيز موجود وی .اودا حکم هغه وخت دې.چه کله دا واړه کلام ښځې کړې وی .يعنی ښځې ونيلې وی .چه، ته ګواه اوسه.چه ،ما خپل ځان د فلانی په نکاح کي ورکړو.چه د فلانی د خوی زوې دې،نو که په مجلس کي د سړی د اړخه چا قبول نکړو.اوسړی ته خبر اورسيدلو.او هغه اجازت ورکړو.نود طرفينو رحمهما الله په نيز باطل، اود ابويوسف رحمه الله په نيز جائز ده.اوکه يوکس د ايجاب په مجلس کي دغائب سړی د اړخه قبول کړه.بيا په خبر ملاويدلو باندې سړی اجازت ورکړو.نو نکاح به جائز وی .

وَحَاصِلُ الْخِلَافِ اَنَّ الْوَاحِدَ لَا يَصْلُحُ فُضُولِيًّا مِنَ الْجَانِبَيْنِ او حاصل دَ دې دا دې چې يوسړې دَ جانبينو نه دَ فضولی جوړيدو اَوْفُضُولِيًّا مِنْ جَانِبٍ وَاَصِيلًا مِنْ جَانِبٍ عِنْدَهُمَا [1] خِلَافًا لَهُ يا دَ يو جانب نه دَ فضولی جوړيدو او دَ بل .

[1]) القول الراجح هو قول الطرفين رحمهما الله كذا فى فتح القدير(۳\۲۰۰) والدرالمختار(۲\۳۵٤) والهندية (۱\۲۹۹) والبحرالرائق

جانب نه د اصیل جوړېدو صلاحیت نه لري د طرفینو رحمهما الله په نزد خلاف د امام ابویوسف رحمه الله.

تشریح:- حاصل د کلام دادې چه یوکس د یواړخه اصیل اود بل اړخه فضولي ،یا د دواړه اړخه فضولي ،یا د یواړخه فضولي او دبل اړخه ولي ،یا د یواړخه فضولي اود بل اړخه د وکیل جوړېدلو صلاحیت لرلې شي اوکه نشي لرلې؟ د ابویوسف رحمه الله په نیز صلاحیت لرلې شي .ددوی په نیز به نکاح منعقد وی .خو په اجازت باندې به موقوف وی .اود طرفینو رحمهما الله په نیز صلاحیت نشي لرلې.نو نکاح به نه منعقد کیږي .زموږ د عالمانو په دې باندې اتفاق دې چه یوکس د یو اړخه وکیل اود دوهم اړخه اصیل ،یا د یواړخه ولي اود بل اړخه اصیل،یا د یواړخه ولي اود بل اړخه وکیل، یاد دواړه طرفو وکیل جوړېدلې شي .او پاتې شوه داچه د یوسړی د دواړه طرفو اصیل جوړېدل،نودا امرمحال(ناممکن) دې.

## د دوي [دوه] فضولیانو یا د یوفضولي اود یواصیل د نکاح حکم

وَلَوْ جَرَى الْعَقْدُ بَيْنَ الْفُضُولِيَّيْنِ أَوْ بَيْنَ الْفُضُولِيِّ وَالْأَصِيلِ جَازَ بِالْإِجْمَاعِ او که جاری شو عقد په مینځ د دوو فضولیانوکي یا په مینځ د یو فضولي او یواصیل کي نو جائز دې په اجماع سره. هُوَ يَقُولُ لَوْكَانَ مَأْمُورًا مِنَ الْجَانِبَيْنِ يَنْفُذُ امام ابویوسف رحمه الله فرمائي چې که دا سړې د جانبینو نه مامور وې نو نافذ به وه فَإِذَا كَانَ فُضُولِيًّا يَتَوَقَّفُ نو هرکله چې دغه فضولي دې نو موقوف به وی

تشریح:- په ماقبل کي بیان شوی وو.چه د طرفینو رحمهما الله په نیز یوکس د دواړه طرفو نه وکیل نشي جوړېدلې.البته د ابویوسف رحمه الله په نیز یوکس د دواړه طرفونه د فضولي جوړېدلو صلاحیت لرلې شي .هلته کي بیان شوی وو.چه عقد د نکاح که د دوي [دوه] فضولیانو،یا د یوفضولي اود یو اصیل په مینځ کي جاری شوی وی .نو بالاتفاق جائز ده.په تیره شوې مسئله کي د امام ابویوسف رحمه الله دلیل دادې.که داکس د دواړه اړخه وکیل وې.نو نکاح به نافذ وه.خو که فضولي دې.نو نکاح به موقوف وی .نو یوکس د دواړه اړخه فضولي جوړېدلې شي .

وَصَارَ كَالْخُلْعِ وَالطَّلَاقِ وَالْإِعْتَاقِ عَلَى مَالٍ او دا دخلع او طلاقو او اعتاق بالمال پشان شوه

تشریح:- اودا د خلع طلاق او اعتقاق پشان شو.مثلاً خاوند اووئیل.چه ،ما دخپلې ښځي سره په زر روپۍ باندې خلع اوکړه،او ښځه موجود نه ده.بیاښځي ته خبر اورسیدلو.اودې قبول کړو.نودا بالاتفاق جائز ده.نو لکه څنګه چې دلته کي په یوه صیغه سره عقدخلع درست شوه.دغه ډول د فضولي واحد په کلام سره هم عقد درست کیدل پکار دی .دغه ډول که خاوند اووئیل.چه ،ما په دومره مقدار باندې طلاق ورکړو، یا مولا اووئیل چه ،ماپه دومره مقدار باندې ازاد کړو،بیا ښځي او غلام ته خبر اورسیدلو.او په کوم مجلس کي چې خبر ملاؤشو.په هغې کي ئې قبول کړو.نو په اتفاق سره جائز دی .نو دغه ډول په عقدنکاح کي هم کیدل پکار دی .چه په اجازت باندې موقوف پاتې شي .حاصل داچه فضولي ،من الجانبین، ئې په خلع طلاق او اعتاق باندې قیاس کړې دې.او جامع په دوی کي د هر یوکس ایجاب اوقبول دې.

وَلَهُمَا أَنَّ الْمَوْجُودَ شَطْرُ الْعَقْدِ لِأَنَّهُ شَطْرٌ حَالَةَ الْحَضْرَةِ فَكَذَا عِنْدَ الْغَيْبَةِ د طرفینو رحمهما الله دلیل دا دې چې موجود جزء د عقد دې ځکه چې دغه د موجودګی په حالت کي جزء دې نو داسې به وی په عدم موجود ګی کي وَشَطْرُ الْعَقْدِ لَا يَتَوَقَّفُ عَلَى مَا وَرَاءَ الْمَجْلِسِ كَمَا فِي الْبَيْعِ او جزء د عقد په ماوراء د مجلس پورې موقوف نه وی لکه په بیع کښې.

تشریح:- د طرفینو رحمهما الله دلیل دادې.چه عقدنکاح په ایجاب اوقبول باندې تمامیږي .اود متن په مسئله کي ددې سړی قول چه،ګواه اوسه ما فلانۍ ښځي سره نکاح کړې ده،دا قول د عقد یوجزء(یعنی ایجاب) دې.او وجه داده.که زوجین په خپله موجود وو.نو بیا به هم داکلام د عقدنکاح یوجزء(یعنی ایجاب) وو.او جزء د عقد د

(۲۴۵|۳) نقلاً عن القول الراجح (۲۶۹|۱)-



مجلس په ماوراء(علاوه) باندې موقوف نه وی .لکه څنګه چې په عقدبیع کي که یوکس اووئیل.چه،ما د فلانی په لاس خپل غلام خرڅ کړو،اود مشتری د اړخه چا قبل نکړو.نودا عقدبیع به باطل وی .ځکه چې په مجلس کي صرف د عقدبیع یوجزء یعنی ایجاب موجود شو.او جزء دعقد په ماوراء د مجلس باندې موقوف نه وی .دغه ډول په نکاح کي به هم جزء د عقد په ماوراء د مجلس باندې موقوف نه وی .

بِخِلَافِ الْمَأْمُورِ مِنَ الْجَانِبَيْنِ لِأَنَّهُ يَنْتَقِلُ كَلَامُهُ إِلَى الْعَاقِدَيْنِ په خلاف د مامور من جانبین نه ځکه چې د دهٔ کلام به منتقل وی عاقدینو اړخ ته وَمَا جَرَى بَيْنَ الْفُضُولِيَّيْنِ عَقْدٌ تَامٌّ وَكَذَا الْخُلْعُ وَأُخْتَاهُ اوکوم چې د دوو فضولیانو په مینځ کي جاری شو دغه عقد تام دې او داسې خلع ده او د دې دواړه نظیرو نه دی لِأَنَّهُ تَصَرُّفُ يَمِينٍ مِنْ جَانِبِهِ حَتَّى يَلْزَمَ فَيَتِمَّ بِهِ ځکه چې دا تصرف د یمین دې د سړی د اړخ نه تر دې چې لازم به وی او د حالف سره به پوره شي .

تشریح:- په خلاف د ،مامور من الجانبین،ځکه کوم وکیل چې د جانبین د اړخه مامور وی .دده کلام منتقل کیږي . عاقدینو اړخ ته.نو ګویا د یواړخه ایجاب شو.اود بل اړخه قبول شو.نود وکیل کلام داسې شو.لکه د دوي [دوه] کسانو کلام،او هرکله چې د دواړه عاقدانو کلام یعنی ایجاب او قبول موجود شو.نو عقد تام شو.ددې په خلاف عقدبیع ده.چه په دې کي یوکس د جانبین د اړخه وکیل نشي جوړېدلې.ددې تفصیل په ماقبل کي تیر شوې دې.او هغه عقد کوم چې د فضولیانو په مینځ کي اوشی .دا عقدتام دې.ځکه چې ایجاب او قبول دواړه موجودیږي . دغه ډول خلع، طلاق علی مال، او اعتاق علی مال هم عقد تام دی .حاصل داچه هرکله زوج اووئیل.چه ،ماخپلې فلانۍ ښځې سره په زرو روپو خلع اوکړه،او ښځه موجود نه وی .نودا خلع به صحیح وی .خو په دې وجه نه چې خاوند د خپل اړخه اصیل اود ښځې د اړخه فضولي دې.بلکه په دې وجه چې خلع د خاوند د اړخه یمین وی .ځکه چې اوس که دې د ښځې د قبلولو نه وړاندې رجوع کول اوغواړی .نو رجوع نشي کولې.او یمین د حالف(قسم کونکی ) سره مکمل کیږي .نو خاوند د ښځې د اړخه د فضولي جوړولو هیڅ اړتیا نشته. لنډیز داچه په خلع، طلاق،او په اعتاق کي ایجاب اوقبول عقد نه دې.بلکه شرط دې.چه دا د خاوند اود مولا په قول باندې پوره کیږي .نو عقد د نکاح به په دې درې واړو باندې قیاس کول،قیاس مع الفارق وی .اودا صحیح نه دې.البته خلع د ښځې د اړخه معاوضه وی .نو که ښځې اووئیل.چه ،ماخپله خلع د فلانی سړی سره د زر روپو په بدله کي اوکړه،او خاوند غائب وی .بیا ده ته خبر اورسیدلو.اودا ئې جائز اوګرځوله.نو صحیح به نه وی .ځکه چې خلع د ښځې د اړخه معاوضه وی .نود مجلس په ماوراء باندې به موقوف نه وی .هم دا تقریر به په ،طلاق علی مال، او په ،اعتاق علی مال، کي کولې شي .والله اعلم بالصواب

## د یو وکیل په یوعقدکې د دوي [دوه] ښځکو د نکاح حکم

وَمَنْ أَمَرَ رَجُلًا أَنْ يُزَوِّجَهُ امْرَأَةً فَزَوَّجَهُ اثْنَتَيْنِ فِي عُقْدَةٍ لَمْ تَلْزَمْهُ وَاحِدَةٌ مِنْهُمَا یو سړی چا ته حکم او کړو چې د دهٔ نکاح او کړی د چا ښځې سره نو هغه په عقد د دوو سره ورته نکاح اوکړو نو په دغو کي به ورته یوه هم لازمه نه وی لِأَنَّهُ لَا وَجْهَ إِلَى تَنْفِيذِهِمَا لِلْمُخَالَفَةِ ځکه چې د دواړو د نکاح نافذ کاوه هیڅ وجه نشته د مخالفت په وجه سره وَلَا إِلَى التَّنْفِيذِ فِي إِحْدَاهُمَا غَيْرَ عَيْنٍ لِلْجَهَالَةِ او نهٔ څهٔ وجه شته په دغو کي د یوې غیر معینې د نکاح نافذ کولو د جهالت په وجه سره وَلَا إِلَى التَّعْيِينِ لِعَدَمِ الْأَوْلَوِيَّةِ فَتَعَيَّنَ التَّفْرِيقُ اونه څه وجه شته د متعین کاوه د عدم اولویت په وجه سره نو تفریق متعین شو.

حل اللغة: ① التنفیذ:نافذکول ② تعیین: معین کول ،مقررکول ③ التفریق:جدا کول ]

تشریح:- صورت د مسئلې دادې.چه یوکس څوك وکیل جوړ کړو.چه زما د یوې ښځې سره نکاح اوکړه.وکیل په عقدواحد کي دوي [دوه] ښځو سره نکاح اوکړه.په دې دواړو کي به د هیڅ یوې نکاح لازم نه وی .ځکه چې

درې صورتونه دي ①یو دا چې په دواړوکې عقد د نکاح نافذ کړې شي . ② دوهم داچه په یوې غیر معین کې نافذ کړې شي . ③دریم داچه یو متعین کې نافذ کړې شي . خودا درې واړه صورتونه ممکن نه دي .رومبې خوځکه ممکن نه دې چه د دواړو په نکاح نافذ کاوه کې د مؤکل مخالفت دې. دوهم په دې وجه ممکن نه دې چه په غیرمعین کې د نافذ کاوه په صورت کې جهالت دې.او په مجهوله کې به نکاح معلق وی .په شرط د بیان باندې.اوملك د نکاح معلق کول جائز نه دی .دریم ځکه ممکن نه دې.چه دیو په متعین کولوکې ،ترجیح بلامرجح، لاځمیږی .هرکله چې درې واړه صورتونه ممکن نه دی .نو تفریق به متعین وی .

### د بل کس وینځې سره د وکیل نکاح کول

| |
|---|
| وَمَنْ أَمَرَهُ أَمِيرٌ بِأَنْ يُزَوِّجَهُ امْرَأَةً فَزَوَّجَهُ أَمَةً لِغَيْرِهِ جَازَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله او چا ته چې حکم اوکړو امیر چې دَ ده نکاح اوکړی د یوې ښځې سره نو ده د بل چا د وینځې سره ورته نکاح اوکړو نو جائز دې د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز ،رُجُوعًا إِلَى إِطْلَاقِ اللَّفْظِ وَعَدَمِ التُّهْمَةِ رجوع کول اطلاق دَ لفظ او دَ تهمت نه کیدو په وجه سره |

**تشریح:-** حاکم څوك وکیل جوړکړو.چه د یوې ښځې سره زما نکاح اوکړه.ده دخپل نه علاوه د بل چا وینځې سره دده نکاح اوکړه.د امام صاحب رحمه الله په نیز دا نکاح جائزده.دا به نشی رد کولې.دلیل دادې.چه په ،توکیل بالنکاح،کې لفظ د امراة مطلق دې.چه آزاد او وینځې دواړو ته ګډ دې.او څه تهمت هم نشته.ځکه چې وینځه د وکیل نه ده.نو وکیل به متهم هم نه وی .

| |
|---|
| وَقَالَ أَبِي يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ رحمهما الله لَا يَجُوزُ إِلَّا أَنْ يُزَوِّجَهُ كُفْوًا(١) او صاحبین رحمهما الله فرمائی چې جائز نه دی . مګر دا چې نکاح او کړی دَ ده په کفو کې ،لِأَنَّ الْمُطْلَقَ يَنْصَرِفُ إِلَى الْمُتَعَارَفِ وَهُوَ التَّزَوُّجُ بِالْأَكْفَاءِ ځکه چې مطلق متعارف اړخ ته منصرف کیږی او دَغه دَ کفو سره نکاح کول دی |

**تشریح:-** صاحبین رحمهما الله فرمائی .چه جائز نه ده.خوکه په کفو کې ئې نکاح کړې وی (نو جائز به وی )دلیل دادې.چه توکیل مطلق دې.او مطلق واپس کیږی . متعارف اړخ ته.او متعارف په کفوکې نکاح کول دی .په غیر کفوکې نه دیّ.

| |
|---|
| قُلْنَا الْعُرْفُ مُشْتَرَكٌ أَوْ هُوَ عُرْفٌ عَمَلِيٌّ فَلَا يَصْلُحُ مُقَيِّدًا امورِ وایو یو عرف مشترك دې او که دغه عملی دې نو صلاحیت نه لری دَ مقید جوړیدو وَذُكِرَ فِي الْوَكَالَةِ أَنَّ اعْتِبَارَ الْكَفَاءَةِ فِي هَذَا اسْتِحْسَانٌ عِنْدَهُمَا او په کتاب الوکالة کې ئې ذکر کړې دې چې په دې کې دَ کفاءت اعتبار مبنی براستحسان دې دَ صاحبینو رحمهما الله په نزد لِأَنَّ كُلَّ أَحَدٍ لَا يَعْجِزُ عَنِ التَّزَوُّجِ بِمُطْلَقِ الزَّوْجِ فَكَانَتِ الِاسْتِعَانَةُ فِي التَّزَوُّجِ بِالْكُفْءِ، وَاللَّهُ أَعْلَمُ ځکه چې دَ مطلق ښځې سره دَ نکاح کاوه نه هیڅوك هم عاجز نه دې نو دَ کفو سره په نکاح کاوه کې به کومك طلب کول وی والله اعلم . |

**تشریح:-** زموږ د اړخه خواب دا دې.چه عرف مشترك دې.یعنی اشراف چې څنګه په ازادو ښځو کې نکاح کوی .دغه ډول د وینځو سره هم کوی .اوکه اومنلې شی .چه صرف آزادو ښځو سره نکاح کول عُرف دې.نودا عرفِ عملی دې.یعنی د خلګو معمول دادې.چه د آزادو ښځوسره نکاح کوی .او اطلاق د لفظ،عرفِ لفظی دې.نود عرفِ لفظی لپاره به عرفِ عملی مقید او مخصوص کولې نشی .ځکه چې تقیید د اطلاق مقابل دې.اود تقابل لپاره اتحاد دمحل شرط وی .او اتحاد د محل موجود شوې نه دې.ځکه چې عرفِ لفظی او په عرفِ عملی کې هیڅ اتحاد نشته.

امام محمد رحمه الله په مبسوط کې په کتاب الوکالت کې ذکر کړی دیٔ .چه دصاحبینو رحمهما الله په نیز په دې صورت کې د کفاءت اعتبار کول استحساناً دی .او وجه د استحسان داده.چه د مطلق ښځې سره نکاح باندې

(١) القول الراجح هو قول الصاحبین رحمهما الله كذا فی فتح القدیر(٢٠٣\٣) وردالمحتار(٣٥٢\٢) والبحرالرائق (٢٤٧\٣) نقلاً عن القول الراجح (٢٧٠١١)-



هرسړې قدرت لری .که حاکم وی .اوکه غیر حاکم وی .نو معلومه شوه.چه حاکم په کفوکې په نکاح باندې کومك طلب کړې دې.او هرکله چې داسې ده.نو په غیرکفوکې نکاح کول،د توکیل خلاف دی .په دې وجه به درست نه وی .

## باب المهر

(دا)باب د مهر( په بیان کښې ) دې

### دمهر شرعي حیثیت

| |
|---|
| وَيَصِحُّ النِّكَاحُ وَإِنْ لَمْ يُسَمِّ فِيهِ مَهْرًا صحیح ده نکاح اګر چې په دې کې دَ مهر ذکر نه وی لِأَنَّ النِّكَاحَ عَقْدُ انْضِمَامٍ وَازْدِوَاجٍ لُغَةً فَيَتِمُّ بِالزَّوْجَيْنِ ځکه چې نکاح عقد دَ انضمام او ازدواج دې په لغت کې نو په زوجینو تمامیږی ،ثُمَّ الْمَهْرُ وَاجِبٌ شَرْعًا إِبَانَةً لِشَرَفِ الْمَحَلِّ فَلَا يُحْتَاجُ إِلَى ذِكْرِهِ لِصِحَّةِ النِّكَاحِ بیا مهر واجب دې شرعًا دَ محل دَ شرافت ظاهرولو دَ پاره په دې وجه ئې ذکر ته حاجت نشته دَ صحت دَ نکاح دَ پاره وَكَذَا إِذَا تَزَوَّجَهَا بِشَرْطِ أَنْ لَا مَهْرَ لَهَا لِمَا بَيَّنَّا او داسې ده که نکاح ئې اوکړه دَ ښځې سره په دې شرط چې مهر به ورته نه وی لکه چې موږ بیان کړو وَفِيهِ خِلَافُ مَالِكٍ رحمه الله او په دې کې خلاف دې دَ امام مالك رحمه الله. |

**حل اللغة:** ① **انضمام:** ضم کول،یوځائې کول ② **ابانة:** ښکاره کول ③ **شرف:** عزت ④ **الازدواج:** واده کول]

**تشریح:**صاحب د قدوری رحمه الله فرمائی .چه نکاح صحیح کیږی .اګرچه په دې کې مهر ذکر نه وی .دلیل دادې.چه نکاح عقد انضمام او عقد ازدواج ته وائی .اودا معنی زوجین سره پوره کیږی .نود نکاح د صحت لپاره دمهر ذکر کول ضروری نه دی . دوهم دلیل دادې.چه په قرآن کې دی . ((فَانْكِحُوا مَا طَابَ لَكُمْ مِنَ النِّسَاءِ)) .....إلخ]اوس که موږ دمهر ذکر کاوه شرط اولګولو.نو په نص باندې به زیاتوالې لازم شی .اودا صحیح نه دې.خو سوال دادې.چه هرکله مهر شرعاً واجب دې.نو بغیر د مهرنه به نکاح څنګه درست وی ؟ څواب دادې.چه وجوب دمهر د نکح د صحت دپار شرط نه دې.بلکه مهر واجب شوې دې.د محل د شرافت، یعنی عظمت اوشرافت ښکاره کاوه دپاره.نود نکاح د صحت لپاره د مهر ذکرکولوکې هیڅ اړتیا نشته.که څوك اشکال اوکړی .چه په دې کې څه دلیل دې.چه د نکاح د صحت لپاره د مهرذکر کاوه څه اړتیا نشته؟ څواب قرآن په دې باندې شاهد دې.فرمائیلی شوی دی . ((لَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ إِنْ طَلَّقْتُمُ النِّسَاءَ مَا لَمْ تَمَسُّوهُنَّ أَوْ تَفْرِضُوا لَهُنَّ فَرِيضَةً وَمَتِّعُوهُنَّ عَلَى الْمُوسِعِ قَدَرُهُ وَعَلَى الْمُقْتِرِ قَدَرُهُ))،هیڅ ګناه نشته.په تاسو،که طلاق ورکړئ تاسوښځو ته،هغه وخت چې لاس هم نه وی لګولې،او مهر هم نه وی مقررکړې،او دوی ته خرچه ورکوئ په مالداره باندې دده د وس مطابق،او په غریب باندې دده د وس مطابق]په دې آیت کې بغیرد تسمیه(مهرمقرر کولو)نه د صحت طلاق حکم لګولې شوې دې.او طلاق کیږی په صحیح نکاح کې .نو معلومه شوه.چه د مهرذکر په پریخودل،د نکاح د صحت د پاره مانع نه دې.فرمائی چې دغه ډول به نکاح هغه وخت هم درست وی .چه کله د مهرنه کیدلوشرط اولګولې شی .هم ددې تیر شوی دلیل په وجه.خود امام مالك رحمه الله اختلاف دې.دې فرمائی .چه د مهرد نفی په شرط سره نکاح درست نه وی .او دلیل دا پیش کوی .چه نکاح عقد معاوضه ده.نو څنګه چې په بیع کښې که د ثمن نه کیدلو شرط اولګوی .نو بیع به باطل وی .دغه ډول د عدم مهرشرط سره به نکاح هم درست نه وی .لیکن موږ څواب ورکوو.چه په دې باندې د ټولو اجماع ده.که د مهر ذکر ترك کړې شی .او صراحتاً نفی اونکړې شی .نو نکاح به درست وی .نو دغه ډول که د مهر نفی اوکړې شی .بیا به هم صحیح وی .ځکه چې په ترك ذکر او په نفی ذکر سره حکم نه مختلف کیږی .مثلاً په بیع کې د ثمن نفی اوکړې شی .یا د ثمن ذکر ترك کړې شی .په دواړه صورتونوکې به عقد بیع باطل وی .

| |
|---|
| وَأَقَلُّ الْمَهْرِ عَشَرَةُ دَرَاهِمَ او دَ مهر کم مقدار لس درهمه دی . وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رحمه الله مَا يَجُوزُ أَنْ يَكُونَ ثَمَنًا فِي الْبَيْعِ يَجُوزُ |

ان يكون مهراًلها امام شافعي رحمه الله فرمائي چې كوم د ثمن صلاحيت لرى په بيع كي هغه مهر كيداې شى دَ ښځي لِأَنَّهُ حَقُّهَا فَيَكُونُ التَّقْدِيرُ إِلَيْهَا ځكه چې مهر دَ ښځي حق دې نو دَ دې اندازه كول به هم دَ دې حق وى .

تشريح:- مصنف د هدايه رحمه الله چې د نكاح د اراكانو اوشرائطو بيانولو نه فارغ شو.نو اوس د نكاح حكم بيانول غواړى .او حكم د نكاح وجوب د مهر دې.بعض وائى .چه مهر مال دې.او بعض وائى .چه مهر ، صداق، دې او صداق نوم دې. دهغه مال كوم چې په عقدنكاح كي ذكر كړې شى .

كاكى رحمه الله فرمائى .چه د مهر اووه نومونه دى .① صداق ② نحلة په قرآن كي دواړه نومونه ذكر دى . ((وَآتُوا النِّسَاءَ صَدُقَاتِهِنَّ نِحْلَةً)) ③ اجر ،داهم په قرآن كي ذكر دې. ((فَآتُوهُنَّ أُجُورَهُنَّ فَرِيضَةً)) ④ فريضه،دا نوم هم په كلام پاك كي موجود دې.((وَقَدْ فَرَضْتُمْ لَهُنَّ فَرِيضَةً)) ⑤ مهر ،ددې نوم ذكر په حديث كي دې.[فان لمسها فلها المهر بما استحل] ⑥ عليقة، نبى كريم ﷺ فرمائى .[أدوا العلايق قيل يارسول الله ﷺ ما العلايق قال ماترضى الاهلون] په حديث كي د عليق نه مراد مهر دې. ⑦ العقر ،نبى كريم ﷺ اوفرمائيل.[عقر نسائها] دلته كي د عقر نه مراد مهر دې.په دې اووه نومونوكي څلور په قرآن كي او درې په احاديثوكي ذكر دى .

د مهركم ازكم مقدار۞د مهر لپاره د زيات مقدار هيڅ حد نشته.البته د مهر په اقل مقدار كي اختلاف دې.د احنافو رحمهم الله په نيز لس درهمه دى .امام مالك رحمه الله فرمائى .چه د مهر اقل مقدار، ربع دينار يا درې درهمه، دى .ابن شبرمه رحمه الله فرمائى .چه كم ازكم پنځه درهمه دى .او ابراهيم نخعى رحمه الله فرمائى .چه د مهر اقل مقدار څلوېښت درهمه دى .اود سعيد ابن جبير رحمه الله په نيز لږترلږ پنځوس درهمه ضرورى دى . حضرت امام شافعى رحمه الله فرمائى .چه كوم شى په عقد بيع كي ثمن جوړيدلې شى .هغه په عقد نكاح كي مهر هم جوړيدلې شى .د امام شافعى رحمه الله دليل دادې.چه مهر د ښځې حق دې.ځه په وصول كولو،او په ساقطولو كي ښځه اختيارمنده ده.معلومه شوه.چه مهر د ښځې حق دې.نو ددې مقدار مقرر كاوه حق به هم ښځې ته وى .

وَلَنَا قَوْلُهُ عليه الصلاة والسلام وَلَا مَهْرَ أَقَلَّ مِنْ عَشَرَةٍ(۱) او زموږ دليل دَ نبى عليه السلام ارشاد دې چې مهر نشته كم دَ لسو درهمو نه وَلِأَنَّهُ حَقُّ الشَّرْعِ وُجُوبًا إِظْهَارًا لِشَرَفِ الْمَحَلِّ او ځكه چې مهر د وجوب په حيثيت حق دَ شريعت دې دَ محل دَ شرافت ظاهرَولو دَ پاره فَيَتَقَدَّرُ بِمَا لَهُ خَطَرٌ وَهُوَ الْعَشَرَةُ اسْتِدْلَالًا بِنِصَابِ السَّرِقَةِ نو دا به په هغه مقدار سره مقرر وى دَ كوم چې څۀ عظمت وى او دغه لس درهمه دى قياس په نصاب دَ سرقې باندې.

تشريح:- زموږ دليل د نبى كريم ﷺ حديث دې.چه، د لسو درهمو نه كم مهر نشته دې، دوهم عقلى دليل دادې.چه مهر د بضع شرافت ښكاره كاوه لپاره د شريعت حق دې.نو دومره مقدار به مقرركولې شى .چه په هغې سره د محل شرافت،او شرافت د بضع ښكاره شى .موږ اوكتل.چه نصاب د ،سرقه،لس درهمه دى .نو گويا د لسو درهمو په غلا كاوه باندې لاس كټ كولې شى .نو معلومه شوه.چه د انسان لپاره د يو اندام يعنى د لاس كم ازكم قيمت لس درهمه دى .نو هم په دې به قياس كولې شى .اوپه نكاح كي به هم د ملك بضع قيمت كم ازكم لس درهمه مقرر كولې شى .

### په مهركي د لس درهمو مقررولو حكم

وَلَوْ سَمَّى أَقَلَّ مِنْ عَشَرَةٍ فَلَهَا الْعَشَرَةُ عِنْدَنَا او كه ذكر ئې كړو دَ لسو درهمو نه كم نو دَ ښځې دَ پاره به لس درهمه وى زموږ په نزد وَقَالَ زُفَرُ رحمه الله لَهَا مَهْرُ الْمِثْلِ لِأَنَّ تَسْمِيَةَ مَا لَا يَصْلُحُ مَهْرًا كَانْعِدَامِهِ او زفر رحمه الله فرمائى چې مهر مثل به وى ځكه چې تسمية دَ هغې شى چې د مهر جوړيدو صلاحيت نه لرى دَ عدم تسميه په مثل دې

(۱) ...تخريجه من حديث جابربن عبدالله رضي الله عنهما



تشريح:- مسئله داده.چه د نكاح د انعقاد په وخت د لسو درهمو نه كم مهر ذكر كړې شو.نو په دې صورت كي به زموږ په نيز د ښځې لپاره لس درهم وى .اود امام زفر رحمه الله په نيز به مهرمثل واجب وى .د امام زفر رحمه الله دليل قياس دې.حاصل د قياس دادې.چه داسې شى مهر جوړول،كوم چې د مهر جوړولو صلاحيت نه لرى .هغه د عدم تسميه پشان دې.اود عدم تسميه په صورت كي مهر مثل واجب وى .نو په دې صورت كي به هم مهرمثل واجب وى .

وَلَنَا أَنَّ فَسَادَ هَذِهِ التَّسْمِيَةِ لِحَقِّ الشَّرْعِ وَقَدْ صَارَ مَقْضِيًّا بِالْعَشَرَةِ،زموږ دليل دا دې چې دَ تسميه فساد دَ حق دَ شرع په وجه دې او دغه پوره شو په لسو سره فَأَمَّا مَا يَرْجِعُ إِلَى حَقِّهَا فَقَدْ رَضِيَتْ بِالْعَشَرَةِ لِرِضَاهَا بِمَا دُونَهَا پاتې شو هغه كوم چې دَ ښځې حق ارخ ته راجع دې نو دغه راضى شوه په لسو په وجه دَ راضى كيدو دَ دې دَ لسو نه په كمو سره

تشريح:-زموږ دليل دادې.چه د لسو درهمو نه د كم مهر ذكر كاوه فساد،د شريعت د حق په وجه دې.اود شريعت حق پوره كيږى .په لسو درهمو سره.نو لس درهمه به پوره كولې شى .د زياتو اړتيا نشته.اوس پاتې شوه دا خبره چې په لسو درهمو باندې ښځه هم راضى ده اوكه نه؟ نو موږ وايو چې هركله دا كم پوهه دلسو نه په كمو باندې راضى وه.نو په لسو درهمو به په درجه اولى راضى وى .حاصل داچه په مهر كي د زوجه او شريعت دواړو حق دې.نو ددې دواړو رعايت به ضرورى وى .او په لسو درهموكي د دواړو رعايت ساتلې شى .ځكه چې د شريعت حق خو لس درهمه دې.او په زياتى كي اگرچه د ښځې حق دې.خودې د لسو درهمو نه په كمو باندې د راضى كيدلو

په وجه، د لسو نه په زياتى كي خپل حق ساقط كړې دې.د كومو چې دې ته پوره پوره اختيار وو.

وَلَا مُعْتَبَرَ بِعَدَمِ التَّسْمِيَةِ؛ لِأَنَّهَا قَدْ تَرْضَى بِالتَّمْلِيكِ مِنْ غَيْرِ عِوَضٍ تَكَرُّمًا،او عدم تسميه معتبر نه ده ځكه چې ښځه بعض وخت راضى كيږى بلاعوضه په مالك جوړولو تكرماً وَلَا تَرْضَى فِيهِ بِالْعِوَضِ الْيَسِيرِ او نه راضى كيږى په دې كي په لږ عوض.

تشريح:-د امام زفر رحمه الله د قياس ځواب دادې.چه د لسونه كم مسمى كول، په عدم تسميه باندې قياس كول صحيح نه دى .ځكه چې انسان د تكريم او فضيلت په اعتبارسره، دتناسل جميل طلب كاوه لپاره كله په خپل پوره حق ساقطولو باندې هم راضى كيږى .او په شئ قليل باندې نه راضى كيږى .دغه ډول دلته كي هم ده.چه ښځه بغير د عوضه په تمليك باندې راضى كيږى .خپل عزت او فضيلت ښكاره كاوه دپاره.خود خپل اوچت شان په وجه په كم عوض او معمولى شى باندې نه راضى كيږى .نو ددې نه دا نه لازميږى .كه ښځه بيخى په مهر نه اخستلو باندې راضى شى .نودا به د لسو نه په كمو باندې هم راضى وى .نودا قياس غلط دې.والله اعلم بالصواب

### د لسو درهمونه كم مهركي د مباشرت نه مخكې د طلاق وركولو مسئله

وَلَوْ طَلَّقَهَا قَبْلَ الدُّخُولِ بِهَا تَجِبُ خَمْسَةٌ عِنْدَ عُلَمَائِنَا الثَّلَاثَةِ رحمهم الله او كه طلاق ئې وركړه دې لره مخكې دَ دخول نه په دې سره نو دې لره به پنځه درهمه وى زموږ دَ درې واړو امامانو په نزد

تشريح:- په پورته ذكر شوې مسئله كي كه ،طلاق قبل الدخول، واقع شو.نو زموږ په نيز به پنځه درهمه واجب وى .

وَعِنْدَهُ تَجِبُ الْمُتْعَةُ كَمَا إِذَا لَمْ يُسَمِّ شَيْئًا او په نزد دَ امام زفر رحمه الله به متعه واجب وى لكه هغه وخت هر كله چې هيڅ ذكر نه كړى .

تشريح:- اود امام زفر رحمه الله په نيز به د ښځې د پاره متعه واجب وى .ځكه چې د امام زفر رحمه الله په نيز په دې صورت كي مهر مثل واجب وو.اود مهرمثل په صورت كي كه طلاق ،قبل الدخول، واقع شى .نو متعه

واجبیږي .نو دلته به هم متعه واجب وي .او زموږ په نیز لس درهمه مسمی وو.نود ،طلاق قبل الدخول، په صورت کي به نصف مسمی واجب وي .اودا پنځه درهمه دي .

**د لس درهمونه زیات مهرکي د مباشرت نه روسته طلاق یاد مرګ په صورت کي د مهرد وجوب حکم**

وَمَنْ سَمّٰى مَهْرًا عَشَرَةً فَمَا زَادَ فَعَلَيْهِ الْمُسَمّٰى إِنْ دَخَلَ بِهَا أَوْ مَاتَ عَنْهَا او چا چي مقرر کړولس درهمه مهر او یا زیات نو په ده مسمی واجب ده که دخول یې د ښځي سره او کړو او یا تري مړشو لِأَنَّهُ بِالدُّخُولِ يَتَحَقَّقُ تَسْلِيمُ الْمُبْدَلِ وَبِهِ يَتَأَكَّدُ الْبَدَلُ ځکه چي د دخول په وجه سره د مبدل سپارل متحقق شو او په دې سره بدل موکد کیږي وَبِالْمَوْتِ يَنْتَهِي النِّكَاحُ نِهَايَتَهُ، وَالشَّيْءُ بِانْتِهَائِهِ يَتَقَرَّرُ وَيَتَأَكَّدُ فَيَتَقَرَّرُ بِجَمِيعِ مَوَاجِبِهِ او په مرګ سره رسي نکاح خپلي انتها ته او شی پخپلي انتهاء سره متقرر او موکد کیږي نو نکاح به د خپلو ټولو احکامو سره متقرر وي

**حل اللغة:** ① **يتحقق**:ثابتیږي ② **تسليم**:سپارل،حواله کول ③ **الاقيسة**: جمع د قیاس ده ④ **الخلوة**: خانله والی]

**تشریح:-** صورت د مسئلې دا دي.چه خاوند دښځي مهر لس د رهمو نه کم یا زیات مقرر کړو.بیا ددې نه روسته دخول موجود شو.یاد ،احد الزوجین، انتقال اوشو.نو په دې دواړه صورتونوکي به خاوند باندې کل مسمی واجب وي .دلیل دادې.چه د دخول په وجه مبدل یعنی د بضع سپارل متحقق شو.اود مبدل په سپارلو سره بدل واجبیږي .نو په خاوند به بدل یعنی مهر واجب وي .او د مرګ په وجه شئ خپل انتهاء ته رسیږي .ددې نه روسته هیڅ شي پاته نه پاتې کیږي .او شئ چي خپل انتهاء ته اورسي .نو مقرر اوموکد کیږي .یعنی په دې کي هیڅ تبدیلي نه راځي .نو نکاح د خپلو ټولو احکامو او واجباتو سره ثابت شوه.او حکم د نکاح مهر هم دې.نود مرګ په وجه به دا هم ثابت وي .

وَإِنْ طَلَّقَهَا قَبْلَ الدُّخُولِ بِهَا وَالْخَلْوَةِ فَلَهَا نِصْفُ الْمُسَمّٰى او که طلاق یې ورته ورکړل مخکي د دخول یا د خلوت نه نو د ښځي نیم مهر دي لِقَوْلِهِ تَعَالٰى وَإِنْ طَلَّقْتُمُوهُنَّ مِنْ قَبْلِ أَنْ تَمَسُّوهُنَّ الْآيَةَ ځکه چي ارشاد باری تعالی دي که تاسو طلاقي کړي دوی لره مخکي د مسه کولونه

**تشریح:-** دوهم صورت دادې.چه دې ښځي ته نې د دخول او خلوت نه مخکي طلاق ورکړو.نو په خاوند به د ښځي لپاره نصف مسمی واجب وي .په دلیل کي علامه مرغیناني رحمه الله آیت پیش کړې دې.یعنی که دجماع نه وړاندې تاسو طلاق ورکړو.او مهردې مقررکړې وي .نو په مقررشوی کي نصف ورکړه.د آیت نه معلومیږي .چه په ،طلاق قبل الدخول، سره نیم مهرواجبیږي .

وَالْأَقْيِسَةُ مُتَعَارِضَةٌ، فَفِيهِ تَفْوِيتُ الزَّوْجِ الْمِلْكَ عَلٰى نَفْسِهِ بِاخْتِيَارِهِ او قیاسونه متعارض دې نو په دې کي د خاوند پخپل حق کي پخپل اختیار ملك لره فوت کول دی وَفِيهِ عَوْدُ الْمَعْقُودِ عَلَيْهِ إِلَيْهَا سَالِمًا فَكَانَ الْمَرْجِعُ فِيهِ النَّصَّ او په دې کي د معقود علیه ښځي اړخ ته صحیح سالم واپس کیدل دی نو مرجع به په دې کي نص وي

**تشریح:-** په ،طلاق قبل الدخول، دوې [دوه] قیاسه خپلوکي متعارض دی .د یوقیاس تقاضا داده.چه په خاوند باندې کل مسمی واجب وي .ځکه چي خاوند په خپل اختیارسره په خپل حق کي ملك بضع فوت کړې دې.دا داسې شوه.چه مشتری مبیع، بائع ته د سپارلو نه وړاندې هلاك کړي .نو په مشتری به کل ثمن واجب وي .نو دغه ډول دلته کي هم وي .د دوهم قیاس تقاضا داده.چه په خاوند باندې هیڅ هم واجب نه وي .نه کُل مسمی نه نیم مسمی .ځکه چي د ،طلاق قبل الدخول، په صورت کي معقود علیه، یعنی بضع صحیح سالم ښځي ته واپس شوې دې.نو هرکله چي مبدل ښځي ته پوره په پوره واپس ملاؤ شو.نو په خاوند باندې به بدل واجب نه وي .لکه څنګه چي عقد بیع فسخ کاوه په صورت کي چي کله مبیع، بائع اړخ ته واپس شي .نو په مشتری باندې ثمن واجب نه وي .دغه ډول به دلته کي هم په خاوند باندې څه واجب نه وي .نو هرکله چي دواړه قیاسونه متعارض دی .نو نص اړخ ته به رجوع کولې شي .او په نص کي نصف مسمی واجب شوې ده.نود نص مطابق به په خاوند باندې په دې صورت کي نصف مسمی واجب وي .



وَشَرْطُهُ أَنْ يَكُونَ قَبْلَ الْخَلْوَةِ، لِأَنَّهَا كَالدُّخُولِ عِنْدَنَا عَلٰى مَا نُبَيِّنُهُ إِنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالٰى .او شرط مقرر شوې دې چي طلاق مخکي د خلوت نه وي ځکه چي خلوت د دخول پشان دې زموږ په نزد لکه چي موږ به بیان کړو انشاءالله تعالی .

**تشریح:-** علامه مرغیناني رحمه الله فرمائی .چه قدوري د ،قبل الخلوت، یعنی د خلوت نه وړاندې شرط لګولې دې.ځکه چي زموږ په نیز خلوت،د دخول په مرتبه کي دې. نو کوم حکم چي د دخول وي .هم هغه به د خلوت وي .

**په مهرسکوت یا د مهرنه کیدلو په شرط سره د نکاح کولوحکم**

قَالَ وَإِنْ تَزَوَّجَهَا وَلَمْ يُسَمِّ لَهَا مَهْرًا أَوْ تَزَوَّجَهَا عَلٰى أَنْ لَا مَهْرَ لَهَا که د ښځي سره یې نکاح اوکړو او دې لره یې مهر ذکر نه کړو یا یې نکاح په دې شرط اوکړو چي دې لره به مهر نه وي فَلَهَا مَهْرُ مِثْلِهَا إِنْ دَخَلَ بِهَا أَوْ مَاتَ عَنْهَا نو د ښځي د پاره به مهر مثل وي که د خول یې ورسره او کړو یا تري مړشو

**حل اللغة:** ① **اسقاط**:ساقط کول ② **البقاء**:پاته والي ③ **الابراء**:بری کول]

**تشریح:-** مصنف رحمه الله دوې [دوه] صورتونه بیان کړی دی . ①اول داچه نکاح ئې اوکړه.اود مهر په اړه کي نې سکوت اوکړو.چه نه ئې ذکر کړو.او نه ئې نفی اوکړه.② دوهم صورت دادې.چه نکاح نې اوکړه.اود مهر نه کیدلو شرط ئې اولګولو.په دې دواړه صورتونوکي به زموږ په نیز مهرمثل واجب وي .په دې شرط چي ښځي سره ئې دخول کړې وي .یاد خاوند انتقال اوشي .

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رحمه الله: لَا يَجِبُ شَيْءٌ فِي الْمَوْتِ، وَأَكْثَرُهُمْ عَلٰى أَنَّهُ يَجِبُ فِي الدُّخُولِ امام شافعی رحمه الله فرمائي چي د مرګ په صورت کي به هیڅ نه وي او اکثر شوافع په دې دی چي د دخول په صورت کي واجب دې لَهُ أَنَّ الْمَهْرَ خَالِصُ حَقِّهَا فَتَتَمَكَّنُ مِنْ نَفْيِهِ ابْتِدَاءً كَمَا تَتَمَكَّنُ مِنْ إِسْقَاطِهِ انْتِهَاءً د دوی دلیل دا دې چي مهر خالص د ښځي حق دې نو دغه به قادره وي د دې په نفی ابتداء لکه چي دغه قادره ده د دې په ساقط کاوه انتهاء

**تشریح:-** امام شافعی رحمه الله فرمائی .چه د مرګ،قبل الدخول، په صورت کي په خاوند باندې هیڅ نه واجبیږي .او اکثر شوافع رحمهم الله فرمائی .چه د دخول په صورت کي به مهرمثل واجب وي .لکه څنګه چي زموږ مذهب دې.د امام شافعی رحمه الله دلیل دادې.چه مهرخالص د ښځي حق دې.نو لکه څنګه چي دا روسته په ساقطولو قدرت لرلې شي .دغه ډول په پیل کي هم نفی کاوه باندې قدرت حاصل دې.امام شافعی رحمه الله د یو حدیث نه هم استدلال کوی .چه د حضرت علی ،زید ابن ثابت، ابن عباس،اود ابن عمر رضی الله عنهم نه مروی دې.د حدیث الفاظ دادی .[قالوا لها الميراث ولاصداق لها وعليها العدة] یعنی دې ښځي لپاره میراث دې.او مهرنشته.او په دې باندې عدت دې.

وَلَنَا أَنَّ الْمَهْرَ وُجُوبًا حَقُّ الشَّرْعِ عَلٰى مَا مَرَّ زموږ دلیل دا دې چي مهر وجوباً حق د شرع دې لکه چي تیر شو وَإِنَّمَا يَصِيرُ حَقَّهَا فِي حَالَةِ الْبَقَاءِ فَتَمْلِكُ الْإِبْرَاءَ دُونَ النَّفْيِ اود ښځي حق به وي په حالت د بقاء کي نو مالکه به وي د بری کاوه نه چي د نفی کولو

**تشریح:-** زموږ دلیل دادې.چه مهر وجوباً د شریعت حق دې.آیت ((أَنْ تَبْتَغُوا بِأَمْوَالِكُمْ)) او آیت ((قَدْ عَلِمْنَا مَا فَرَضْنَا عَلَيْهِمْ)) په وجه سره.د دواړه آیاتونو تفصیل د اصول فقه په کتابونوکي موجود دې.اودې کتلې شی .بعض خلګ وائی .چه په مهر کي درې حقه دی . ① حق شرع،حق شرع دادې. چي د لسو درهمو نه کم نه وي .② د اولیاء حق، د اولیاء حق دادې.چه د مهر مثل نه کم نه وي .
③د ښځي حق،د ښځي حق دادې.چه مهر ددې ملك دې.خو حق د شریعت او حق د اولیاؤ صرف د نکاح د ابتداء په وخت معتبر دې.اود ښځي حق په حالت بقاء کي معتبر دې.نو ښځه بقاء خو ساقطولې شي خو په

پیل کي نفی نشی کولې.نود امام شافعی رحمه الله دا وئیل.چه په ابتداء کي په نفی کاوه باندې قادر ده.دا دخپل حق نه تجاوز کول دی .شرعاً ددې اجازت نشته.

| |
|---|
| وَلَوْ طَلَّقَهَا قَبْلَ الدُّخُولِ بِهَا فَلَهَا الْمُتْعَةُ اوکه قبل دَدخول نه ئې طلاق ورکړل نو ښځې لره متعه ده لِقَوْلِهِ تَعَالَى وَمَتِّعُوهُنَّ عَلَى الْمُوسِعِ قَدَرُهُ الْآيَةَ ځکه چې ارشاد باری تعالی دې ومَتِّعُوهُنَّ اهـ ثُمَّ هَذِهِ الْمُتْعَةُ وَاجِبَةٌ رُجُوعًا إِلَى الْأَمْرِ وَفِيهِ خِلَافُ مَالِكٍ رحمه الله بیا دا مُتعه واجب ده امر اړخ ته رجوع کول او په دې کي دَ امام مالک رحمه الله اختلاف دې. |

تشریح:- او که دې ښځې ته ئې طلاق قبل الدخول ورکړو.نوددې ښځې لپاره به متعه واجب وی .دلیل ایت دې.((لَاجُنَاحَ عَلَيْكُمْ إِنْ طَلَّقْتُمُ النِّسَاءَ مَا لَمْ تَمَسُّوهُنَّ أَوْ تَفْرِضُوا لَهُنَّ فَرِيضَةً وَمَتِّعُوهُنَّ)) په آیت کي ،او، په معنی دَ ،واؤ،دې.یعنی په تاسو هیڅ ګناه نشته.که تاسو طلاق ورکړو.ښځو ته،ترکومه پورې چې تاسومَس کړې نه وی .او مقرر کړې مو نه وی مهر، او متعه ورکړئ دوی ته.

فائده د متعه په وجوب او عدم وجوب کي اختلاف دې.امام مالک رحمه الله د استحباب قائل دې.او احناف رحمهم الله د وجوب قائل دی .د امام مالک رحمه الله دلیل دادې.چه په قرآن کي متعه ورکونکو ته محسن وئیلی شوی دی .او محسن متطوع ته وائی .یعنی نفل کار کاوه والا.زموږ دلیل اود امام مالک رحمه الله ځواب دادې.چه ،

وَمَتِّعُو، د امر صیغه ده.چه د وجوب لپاره راځی . دوهم لفظ ((حقا)) دې.داهم په وجوب باندې دلالت کوی .دریم لفظ ، ((على)) چې د الزام لپاره راځی .او پاتې شو لفظ د ،محسن، نو ددې مطلب دادې.چه هغه خلګ ځوک چې واجب اداکوی .اود خپل اړخه د احسان په طور زیات ورکوی .نو اوس مُحسنين د امام مالک رحمه الله مستدل نه جوړیږی .

## د متعه حقیقت

| |
|---|
| وَالْمُتْعَةُ ثَلَاثَةُ أَثْوَابٍ مِنْ كِسْوَةِ مِثْلِهَا وَهِيَ دِرْعٌ وَخِمَارٌ وَمِلْحَفَةٌ او متعه درې کپړې دی دَ دغې شان ښځې دَ کپړو نه او دغه قمیص دې لوپټه ده او پټو (څادر) دې وَهَذَا التَّقْدِيرُ مَرْوِيٌّ عَنْ عَائِشَةَ وَابْنِ عَبَّاسٍ رضي الله عنهما او دا اندازه مروی ده دَ حضرت عائشي رضي الله عنها او ابن عباس رضي الله عنه نه |

حل اللغة:① درع: لوپټه ② خمار:څادر،پړوني ③ الموسع:مالدار]

تشریح:- د متعه حقیقت دا دې.چه دا درې کپړې دی .کرته، او پټو (څادر) ددې درې کپړو تعین او اندازه د حضرت عائشه او ابن عباس رضي الله عنه نه منقول ده

| |
|---|
| وَقَوْلُهُ مِنْ كِسْوَةِ مِثْلِهَا إِشَارَةٌ إِلَى أَنَّهُ يُعْتَبَرُ حَالُهَا وَهُوَ قَوْلُ الْكَرْخِيِّ رحمه الله فِي الْمُتْعَةِ الْوَاجِبَةِ لِقِيَامِهَا مَقَامَ مَهْرِ الْمِثْلِ او د قدوری قول من كسوة مثلها اشاره ده دې اړخ ته چې دَ ښځې حال معتبر دې او دا قول دَ کرخی دې. په متعه واجب کي دَ متعې قائم مقام دَ مهر مثل کیدو په وجه سره |

تشریح:- د صاحب د قدوری رحمه الله د عبارت[من كسوة مثلها] نه اشاره دې اړخ ته دې.چه په متعه کي به د ښځې د حال اعتبار کولې شی .په متعه واجبه کي د امام کرخی رحمه الله قول هم دادې.دلیل دادې.چه متعه د مهرمثل قائم مقام ده.او په مهرمثل کي د ښځو حال معتبر دې.نوکوم چې ددې قائم مقام وی .په هغې کي به هم د ښځې د حال اعتبار کولې شی .

| |
|---|
| وَالصَّحِيحُ أَنَّهُ يُعْتَبَرُ حَالُهُ او صحیح دا ده چې دَ سړی حال معتبر دې عَمَلًا بِالنَّصِّ وَهُوَ قَوْلُهُ تَعَالَى عَلَى الْمُوسِعِ قَدَرُهُ عمل کول په نص باند او دغه قول دَ باری تعالی دې په مقدوروالا دَ دهٔ موافق وَعَلَى الْمُقْتِرِ قَدَرُهُ او په تنګی والا دَ دهٔ موافق |

تشریح:- او صحیح قول دادې.چه د سړی د حال اعتبار به کولې شی .ددوی دلیل د قرآن آیت ((عَلَى الْمُوسِعِ قَدَرُهُ وَعَلَى الْمُقْتِرِ قَدَرُهُ)) دې.چه الله تعالی د سړی د حال اعتبار کړې دې.د ښځې ئې نه دې کړې.متعه په درې قسمه



ده.① ادنی ② اوسط ③ اعلی . ادنی خو داده.چه دا درې واړه کپړې سوچه وی .اوسط داده.چه تسری وی .تسر یوه کپړه ده.چه د ریښمو نه کمتره وی .اود سوت نه ښه وی .او اعلی درجه متعه داده.چه دا درې واړه کپړې د ریښمو وی .

| |
|---|
| ثُمَّ هِيَ لَا تُزَادُ عَلَى نِصْفِ مَهْرِ مِثْلِهَا وَلَا تَنْقُصُ عَنْ خَمْسَةِ دَرَاهِمَ بیا دا متعه به په نیم مهرمثل نه شی زیاتولې او نه به دَ پنځو درهمو نه کمولې شی وَيُعْرَفُ ذَلِكَ فِي الْأَصْلِ او دا مسئله معلومیږی په مبسوط کي. |

تشریح:- بیا علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی .چه په متعه کي که د ښځې حال معتبر وی .او که د سړی .خود نیم مهر څخه به زیات اود پنځه درهمو څخه به کم نه وی .د نیم مهرمثل څخه به زیات په دې وجه نه وی .چه مهرمسمی اقوی دې.د مهرمثل نه ،ځکه چې د مهرمسمی وجوب په عقد اوتسمیه سره شوې دې.اود مهرمثل وجوب صرف په عقد سره شوې دې.اوس که په داسې نکاح کي طلاق قبل الدخول ورکړې شو.په کومه نکاح کي چې تسمیه موجود شوی وی .نو په نیم مسمی باندې به زیاتوالې نشی کیدلې.نو داسې نکاح چې پکې تسمیه نه وی موجود شوې.په نیم مهرمثل باندې به په درجه اولی زیاتوالې نه کیږی .اود پنځه درهمو څخه به کم په دې وجه نه وی .چه متعه واجبیږی .د بضع په عوض کي .او هیڅ یو عوض د لسو درهمو نه کم نه وی .نود نیم عوض،یعنی پنځه درهمو نه کمول نه دی پکار.

## په رضامندئ سره د مهر مقررولو تفصيل

| |
|---|
| وَإِنْ تَزَوَّجَهَا وَلَمْ يُسَمِّ لَهَا مَهْرًا ثُمَّ تَرَاضَيَا عَلَى تَسْمِيَةٍ فَهِيَ لَهَا إِنْ دَخَلَ بِهَا أَوْ مَاتَ عَنْهَا او که وادهئ او کړو دَ ښځې سره او مهر ئې ورته مقرر نه کړو بیا راضی شو دواړه د هغې په تسمیه باند نو د هغې دَ پاره به دغه وی که دخول ئې ورسره اوکړو یا ترې مړشو |

تشریح:- صورت د مسئلې دادې.چه د نکاح په وخت کي مهر ذکر نکړې شو.بیا ښځې خاوند یو مقدار مقرر کړو.نو اوس که خاوند د ښځې سره دخول اوکړو.یا مړ شو.نو په دواړه صورتونوکي به دا مقررشوې مقدار واجب وی .

| |
|---|
| وَإِنْ طَلَّقَهَا قَبْلَ الدُّخُولِ بِهَا فَلَهَا الْمُتْعَةُ او که طلاقه ئې کړه مخکې دَ دخول نه نو هغې لره به متعه وی |

تشریح:- او که ،طلاق قبل الدخول، دې.نود طرفینو رحمهما الله په نیز به ښځې لپاره متعه واجب وی

| |
|---|
| وَعَلَى قَوْلِ أَبِي يُوسُفَ رحمه الله الْأَوَّلِ نِصْفُ هَذَا الْمَفْرُوضِ وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ رحمه الله او دَ ابی یوسف په اولنی قول به نیم دَ دې مفروض وی او دا دَ امام شافعی رحمه الله قول دې لِأَنَّهُ مَفْرُوضٌ فَيَتَنَصَّفُ بِالنَّصِّ ځکه چې دا مفروض دې نو تنصیف به ئې کیږی دَ نص په وجه |

تشریح:- .اود ابویوسف رحمه الله قول اول دادې.چه ددې متعین شوی مقدار نیم به واجب وی . اوهم دا قول د امام شافعی رحمه الله دې.د ابویوسف رحمه الله دوهم قول د طرفینو رحمهما الله سره دې.

فائده د امام شافعی او ابویوسف رحمهما الله د قول اول دلیل دادې.چه زوجینو پخپل اتفاق سره کوم مقدار مقرر کړې دې.دا مفروض(مقرر او متعین) دې.اود آیت ((فَنِصْفُ مَا فَرَضْتُمْ)) نه د مفروض تنصیف ثابت دی .که مفروض،فی حالت العقد، وی .او که مفروض ،بعد العقد، وی .نو که په دې صورت کي هم ،طلاق قبل الدخول، موجود شی .نو نصف مفروض به واجب وی .متعه به واجب نه وی

| |
|---|
| وَلَنَا أَنَّ هَذَا الْفَرْضَ تَعْيِينٌ لِلْوَاجِبِ بِالْعَقْدِ وَهُوَ مَهْرُ الْمِثْلِ وَذَلِكَ لَا يَتَنَصَّفُ فَكَذَا مَا نَزَلَ مَنْزِلَتَهُ او زموږ دلیل دا دې چې دا فرض دَ دې تعین په کوم چې دَ عقد په وجه واجب شوې دې او دغه مهر مثل دې او دَ مهر مثل تنصیف نه کیږی نو دغسې ئې دَ هغې هم نه کیږی کوم چې دَ دې په مرتبه کي راغلې وی وَالْمُرَادُ بِمَا تَلَا الْفَرْضُ فِي الْعَقْدِ |

هُوَالْفَرْضُ الْمُتَعَارَفُ او مرا دَ هغې نه كوم چې ابويوسف رحمة الله عليه تلاوت كړو فرض فى العقد دې ځكه چې دغه فرض متعارف دې

تشريح:- زمونږ دليل دادې چه د عقد نكاح په وخت كه مهر ذكر نه كړې شى .نو مهرمثل به واجب وى .نو په دې صورت كې به هم د نكاح په وخت د مهر نه ذكر كاوه په وجه مهرمثل واجب وى .روسته چې زوجينو په كوم مقدار باندې اتفاق كړې دې.نودا روسته متعين كړې مقدار په حقيقت كې تعين دې د هغه مقدار كوم چې د عقد په وجه واجب شوې وو.اود عقد په وجه مهرمثل واجب شوې وو.اود مهرمثل تنصيف نه كيږى .نو كوم چې ددې قائم مقام دې.يعنى ،مفروض بعد العقد، ددې به هم تنصيف نه كيږى .او هركله چې تنصيف نشى كيدلې.نو متعه به واجب وى .او ابويوسف رحمة الله عليه چې كوم آيت تلاوت كړې دې.يعنى ((فَنِصْفُ مَا فَرَضْتُمْ)) نو ددې خواب دادې.چه په آيت كې فرض فى العقد مراد دې.فرض بعد العقد مراد نه دې.او ددې وجه داده.چه آيت مطلق دې.او مطلق چې ګله اووئيلې شى .نو ددې نه متعارف مراد وى .او متعارف ،مفروض فى العقد، دې.،مفروض بعد العقد، نه دې.نود ،مفروض فى العقد، تنصيف به كيږى .د ،مفروض بعد العقد، تنصيف به نه كيږى .

## د عقد نه روسته په مهركې زياتې كول

قَالَ وَإِنْ زَادَهَا فِي الْمَهْرِ بَعْدَ الْعَقْدِ لَزِمَتْهُ الزِّيَادَةُ خِلَافًا لِزُفَرَ رحمة الله عليه نو كه مهر ئې زيات كړو دَ عقد نه نو نو لازمه به وى په خاوند دغه اضافه په خلاف دَ زفر رحمة الله عليه وَسَنَذْكُرُهُ فِي زِيَادَةِ الثَّمَنِ وَالْمُثَمَّنِ إِنْ شَاءَ اللَّهُ تَعَالَى او مونږ به دا ډير زر ذكر كړو په زياتى دَ ثمن او مثمن كې انشاء الله تعالى

حل اللغة:① تنصيف:نيمول ② المفروض: مقررشوې ③ الحط:كموالې ]

تشريح:- د عقدنكاح نه روسته په مقررشوى مهر باندې خاوند زياتوالې اوكړو.او ښځې هم په دغه مجلس كې قبول كړو.نو زمونږ په نيز به دا زياتوالې په خاوند باندې لازم وى . زمونږ دليل د قرآن آيت دې. ((وَلَاجُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيمَا تَرَاضَيْتُمْ بِهِ مِنْ بَعْدِ الْفَرِيضَةِ)) او ګناه نشته په تاسو په دې خبره كې چې مقرر كړئ تاسو دواړه په خپله رضامندئ باندې د مقرر شوى نه پس]د آيت په تفسير كې مولانا شبيراحمد رحمة الله عليه ليكلى دى .كه زوجين د مهرمقرر كاوه نه روسته په څه خبره باندې راضى شى .مثلاً ښځه په خپله رضامندئ باندې څه كم كړى .يا دې په خپله رضامندئ سره د مهرمقرر نه څه زيات كړى .نودې اختيار مند دې. په دې كې هيڅ ګناه نشته. بهرحال كه كموى اوكه زياتوى .په خپل مينځ كې رضامندى ضرورى ده.

په زير بحث مسئله كې امام زفر رحمة الله عليه فرمائى .چه زياتوالې صحيح نه دې.او امام شافعى رحمة الله عليه هم ددې قائل دې.

خو ياد ساتئ چې د آئمه ثلاثه او امام زفر رحمة الله عليه اختلاف د ثمن په زياتوالى او په مثمن كې دې.چه د ،باب المرابحة او توليه، نه روسته په يوفصل كې ذكر دې.اختلاف دادې.چه د احنافو رحمهم الله په نيز مشترى په ثمن كې او بائع په مبيع كې زياتوالې كولې شى .اود امام زفراو امام شافعى رحمهما الله په نيز نشى كولې. د امام زفر رحمة الله عليه دليل دادې.چه زياتوالې مستقله هبه ده.نود اصل عقد سره به نشى لاحق كولې.كه ښځې قبضه اوكړه.نو مالكه به وى .ګنى مالكه به نه وى .

وَإِذَا صَحَّتِ الزِّيَادَةُ تَسْقُطُ بِالطَّلَاقِ قَبْلَ الدُّخُولِ او هركله چې زياتې صحيح شو نو ساقطيږى به په طلاقو قبل الدخول سره وَعَلَى قَوْلِ أَبِي يُوسُفَ رحمة الله عليه أَوَّلًا تَتَنَصَّفُ مَعَ الْأَصْلِ او دَ امام ابويوسف رحمة الله عليه په اول قول باند به نيميږى د اصل سره لِأَنَّ التَّنْصِيفَ عِنْدَهُمَا يَخْتَصُّ بِالْمَفْرُوضِ فِي الْعَقْدِ ځكه چې دَ طرفينو رحمهما الله په نزد نصف خاص دې د مفروض فى العقد سره وَعِنْدَهُ الْمَفْرُوضُ بَعْدَهُ كَالْمَفْرُوضِ فِيهِ عَلَى مَا مَرَّ او دَ ابويوسف رحمة الله عليه په نزد مفروض بعدالعقد داسې دې لكه مفروض فى العقد لكه چې تير شو



تشريح:- هر كله چې زمونږ په نيز په مهر كې زياتوالې كول درست دې.نود ،طلاق قبل الدخول، په صورت كې به د اصل سره د زياتوالى تنصيف به هم كيږى .او كه نه؟ نو په دې اړه كې د ابويوسف رحمة الله عليه رومبې قول دادې.چه د اصل مهرسره به د زياتوالى هم تنصيف كيږى .اود طرفينو رحمهما الله په نيز به د اصل مهر تنصيف كيږى .خود زياتوالى به نه كيږى .د ابويوسف رحمة الله عليه دليل هم هغه دې.كوم چې په ماقبل كې تيرشو.چه ،مفروض بعد العقد، داسې دې.لكه ،مفروض فى حالة العقد،

او زمونږ دليل دادې.چه تنصيف د ،مفروض فى حالة العقد، سره مخصوص دې.نو كوم اصل مهر چې په حالت د عقد كې مقرر شوې وو.ددې تنصيف به كيږى .خوكوم چې روسته زيات شوې دې.ددې تنصيف به نه كيږى .

وَإِنْ حَطَّتْ عَنْهُ مِنْ مَهْرِهَا صَحَّ الْحَطُّ لِأَنَّ الْمَهْرَ بَقَاءً حَقُّهَا وَالْحَطُّ يُلَاقِيهِ حَالَةَ الْبَقَاءِ او كه ښځې خاوند په څۀ مهر كم كړو نو دا كول صحيح دې ځكه چې مهر دَ ښځې حق دې او كمول دَ نكاح دَ بقا په حالت كې شوى دى .

تشريح:- كه ښځې د خپل مهر نه څه كم كړل.نو كمول درست دى .ځكه چې مهر د ښځې حق دې.او كمول په حالت بقاء كې لاحق شو.كوم چې د ښځې په اختيار كې دى . لنډيز داشوه.چه په ابتداء د عقد كې د شريعت د حق په وجه، د لسو درهمو نه نشى كمولې.اود مهرمثل نه د اولياؤ د حق په وجه نشى كمولې.اود عقد نكاح نه روسته تركومه پورې چې نكاح قائم وى .كمول به نافذ وى .د خپل حق په وجه.په دې شرط چې په مجلس كې سړې دا كمى قبوله هم كړى .

## د خلوت صحيحه نه روسته د طلاق په صورت كې د مهرحكم

وَإِذَا خَلَا الرَّجُلُ بِامْرَأَتِهِ وَلَيْسَ هُنَاكَ مَانِعٌ مِنَ الْوَطْءِ ثُمَّ طَلَّقَهَا فَلَهَا كَمَالُ الْمَهْرِ هر كله چې يواځې شو خاوند دَ ښځې خپلې سره او هلته څوك مانع نه وه د وطى نه بيا ئې دغه طلاقه كړه نو ښځې لره به پوره مهر وى

حل اللغة:① الموانع: جمع د مانع: ركاوټ ② يتاكد:مضبوطيږى ③ مستوفى: حاصلونكې ]

تشريح:- مسئله داده.چه يوكس د خپلې ښځې سره خلوت صحيحه اوكړو.اود خلوت په وخت كې د وطى څه مانع هم نه وو.بيا خاوند خپلې ښځې ته طلاق وركړو.نو زمونږ په نيز به د ښځې لپاره پوره مهر واجب وى .

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رحمة الله عليه: امام شافعى رحمة الله عليه لَهَا نِصْفُ الْمَهْرِ، لِأَنَّ الْمَعْقُودَ عَلَيْهِ إِنَّمَا يَصِيرُ مُسْتَوْفًى بِالْوَطْءِ فَلَا يَتَأَكَّدُ الْمَهْرُ فرمائى چې نيم مهر به وى ځكه چې معقود عليه په پوره طور سره په وطى حاصليږى نو د دې نه بغير به مهر مؤكد نه وى

تشريح:- اود امام شافعى رحمة الله عليه په نيز به نصف مهر وى .د امام شافعى رحمة الله عليه دليل دادې.چه منافع د بضع په وطى سره په پوره طريقه حاصليږى .او وطى موجود شوې نه ده.نو ګويا خاوند مبدل نه دې وصول كړې.نو په خاوند به بدل هم واجب نه وى .نو نتيجه دا راؤ وتله.چه بغيرد وطى نه مهر نه مؤكد كيږى .

وَلَنَا أَنَّهَا سَلَّمَتِ الْمُبْدَلَ حَيْثُ رَفَعَتِ الْمَوَانِعَ وَذَلِكَ وُسْعُهَا زمونږ دليل دا دې چې ښځې مبدل اوسپارلو ځكه چې دې موانع پورته كړل او دَ دې په وَس كې دَغه وَه فَيَتَأَكَّدُ حَقُّهَا فِي الْبَدَلِ اعْتِبَارًا بِالْبَيْعِ نو په بدل كې به دَ دې حق مؤكد شى قياس په بيعې باندې

تشريح:- زمونږ دليل دادې.چه ښځې د بضع منافع، يعنى مبدل د خاود حواله كړې دې.ځكه چې ښځې واړه موانع پورته كړى دى .اود ښځې په قدرت كې صرف هم دومره وو.ددې نه زياتى نه وو.نو هركله چې ښځې مبدل اوسپارلو.نود ښځې حق بدل به هم ثابت وى .او هغه بدل مهر دې.نود ښځې لپاره به په دې صورت كې كامل مهر واجب وى .او مونږ قياس كوو. په بيع باندې هم.چه لكه څنګه بائع كه د مبيع اومشترى په مينځ كې تخليه اوكړى .چه د مبيع په اخستلوكې هيڅ مانع پاتې نشى .نود بائع د اړخه به دا د مبيع سپارل وى .او په مشترى به ثمن واجب وى .

زمونږ د مذهب تائید د خلفائې راشدینو په فیصلو سره هم کیږی .فیصله داده.چه[أن من غلق بابـا او أرخـى ستراً فقد وجب المهر ووجبت العدة] یعنی کوم کس چې دروازه بنده کړه. یا ئې پرده زوړنده کړه.نو مهر به واجب وی .اوعدت به هم واجب وی .(عینی شرح هدایه)

## د خلوت فاسده صورتونه

وَإِنْ كَانَ أَحَدُهُمَا مَرِيضاً أَوْصَائِماً فِي رَمَضَانَ که په دوی کې یو بیمار وه او یا ئې دَ رمضان روژه وه أَوْمُحْرِماً بِحَجِّ فَرْضٍ أَوْنَفْلٍ أَوْبِعُمْرَةٍ یا ئې دَ فرض حج احرام تړلې وه یا دَ نفل حج یا دَ عمرې أَوْكَانَتْ حَائِضاً فَلَيْسَتْ الْخَلْوَةُ صَحِيحَةً یا وه ښځه حائضه نو داخلوت صحیح نه دې حَتَّى لَوْطَلَّقَهَا كَانَ لَهَا نِصْفُ الْمَهْرِ لِأَنَّ هَذِهِ الْأَشْيَاءَ مَوَانِعُ تر دې چې که طلاقه ئې کړه نو نیم مهر به وی ورته ځکه دا شیان (څیزونه ) دَ موانعو نه دی

**حل اللغة:** ① **یعری**:خالی کیږی ② **تکسر**:ماتوالې،کمزوری ③ **فتور**:سستی ،④ **الافطار**:روژه ماتول ]

**تشریح:**- وړاندې معلومه شوه.چه د خلوت دوې [دوه] قسمه دی .خلوت صحیحه اوخلوت فاسده.چه د یوکس لپاره د وطی څه مانع موجود وی .نو په داسې صورت کې چې کوم خلوت وی .دابه خلوت فاسده شمارلې شی .اوکه د وطی څه مانع موجود نه وی .نوپه داسې صورت کې چې کوم خلوت وی .دابه خلوت صحیحه شمارلې شی .

ﻓ موانع په څوقسمه دی .مانع حقیقی ، مانع طبعی ، مانع شرعی ، مانع حسی ،د مانع حقیقی مثال ناروغی (ناروغی (بیماری )) ده.اود مانع طبعی او مانع شرعی مثال حیض دې.حیض مانع طبعی په دې وجه دې.چه په دې کې به د حیض د وینې په وجه تلویث کیږی .چه طبعیت سلیمه دا نه خوښوی .او مانع شرعی په دې وجه دې.چه الله تعالی فرمائیلی دی . ((وَلَاتَقْرَبُوهُنَّ حَتَّى يَطْهُرْنَ)) او صرف د مانع طبعی مثال ارتقاء کیدل دی .یعنی د ښځې د شرم ګاه خوله بندیدل،یا دومره صغیره کیدل دی .چه د جماع قابله نه وی .اوصرف د مانع شرعی مثال د فرض حج احرام دې.او مانع حسی دادې.چه د زوجینو په مکان کې څوك دریم کس هم موجود وی .که بینا وی .اوکه نابینا(ړوند)،که بیدار وی .او که اوده کس وی .بالغ وی .اوکه ناپوهه ماشوم وی .

أَمَّا الْمَرَضُ فَالْمُرَادُ مِنْهُ مَا يَمْنَعُ الْجِمَاعَ أَوْيَلْحَقُهُ بِهِ ضَرَرٌ به هر حال دَ مرض نه مراد هغه مرض دې چې منع کوی جماع لره یا دَ دې په وجه ضرر لاحق کیږې ،وَقِيلَ مَرَضُهُ لَايَعْرَى عَنْ تَكَسُّرٍ وَفُتُورٍ،وَهَذَا التَّفْصِيلُ فِي مَرَضِهَا او وئیلی دی چې د سړی مرض دَ شکستګی او سستی نه خالی نه وی او دا تفصیل دَ ښځې په مرض کې هم دې

**تشریح:**- صاحب دهدایه رحمه الله د موانعو تفصیل ذکر کول غواړی .د ټولو نه وړاندې فرمائی .چه ناروغی (ناروغی (بیماری )) مانع ده.خو ناروغی (ناروغی (بیماری )) هغه ناروغی (ناروغی (بیماری )) مراد ده.چه د جماع مانع وی .یا په جماع کولوسره ضرر لاحق کیږی .مطلقاً ناروغی (ناروغی (بیماری )) مراد نه ده.اود بعضو رائې داده.چه د سړی ناروغی (ناروغی (بیماری )) مطلقاً مانع ده.ځکه چې په مطلق بیمارئ سره د اندامونو شکایت او سستی پیدا کیږی .نو په سړی کې دجماع لپاره شوق نه پیدا کیږی .په دې وجه د سړی مطلق ناروغی (ناروغی (بیماری )) مانع ګرځولې شوې ده.اود بیمارئ چې کوم ویش شوې دې.هغه د بیمارئ شوې دې.حاصل داچه د ښځې ناروغی (ناروغی (بیماری )) بغیر د اختلافه ویش ده.اود سړی ناروغی (ناروغی (بیماری )) د یو رائې مطابق ویش ده.او یوه رائې داده.چه د سړی ناروغی (ناروغی (بیماری )) منقسم نه ده.اود سړی ناروغی (ناروغی (بیماری )) په هرحال کې د خلوت صحیحه لپاره مانع ده.

وَصَوْمِ رَمَضَانَ لِمَا يَلْزَمُهُ مِنَ الْقَضَاءِ وَالْكَفَّارَةِ هر چې روژه دَ رمضان ده نو ځکه چې دَ دې قضا او کفاره لازمیږی



**تشریح:**- اود رمضان روژه هم د خلوت صحیحه لپاره مانع ده.ځکه چې د رمضان د روژې په حالت کې که وطی اوکړې شوه.نو قضاء او کفاره به واجب وی .اودې سره به ګناهګار هم وی .او ښکاره خبره ده.چه په دې څیزونو کې حرج دې.نود رمضان روژه به هم د خلوت مانع وی .

وَالْإِحْرَامِ لِمَا يَلْزَمُهُ مِنَ الدَّمِ وَفَسَادِ النُّسُكِ وَالْقَضَاءِ او احرام ځکه چې لازموی دَم او فساد دَ عبادت او قضا لازمه وی ،وَالْحَيْضُ مَانِعٌ طَبْعاً وَشَرْعاً او حیض مانع دې طبعًا هم او شرعًا هم.

**تشریح:**- او احرام په دې وجه دخلوت مانع دې.چه په حالت د احرام کې که جماع اوکړې شوه.نو په محرم به دم واجب وی .یعنی د وزه یا اوښ ذبح کول به واجب وی .اود ده عبادت به فاسد وی .او قضاء به واجب وی ښکاره ده.چه په دې څیزونو کې هم حرج دې.نو احرام به هم د خلوت مانع وی . او حیض په دې وجه مانع دې.چه د حیض په حالت کې وطی کول، طبعاً هم ممنوع دی .او شرعاً هم منع دی .لکه څنګه چې وړاندې تیر شو.

وَإِنْ كَانَ أَحَدُهُمَا صَائِماً تَطَوُّعاً فَلَهَا الْمَهْرُ كُلُّهُ لِأَنَّهُ يُبَاحُ لَهُ الْإِفْطَارُ مِنْ غَيْرِ عُذْرٍ فِي رِوَايَةِ الْمُنْتَقَى اوکه په دوی کې یو نفلی روژه دار وه نو ښځې لره به پوره مهر وی ځکه چې دَ دهٔ لپاره بلاعذره افطار مباح دې دَ منتقی په روایت کې وَهَذَا الْقَوْلُ فِي الْمَهْرِ هُوَ الصَّحِيحُ .وَصَوْمُ الْقَضَاءِ وَالْمَنْذُورِ كَالتَّطَوُّعِ فِي رِوَايَةٍ او دا قول دَ مهر په اړه کې صحیح دې او قضا او نذر روژه دَ نفلی روژې پشان ده په یو روایت کې لِأَنَّهُ لَاكَفَّارَةَ فِيهِ ځکه چې په دې کې کفاره نشته

**تشریح:**-اوکه ،احد الزوجین، په نفلی روژې سره دې.او خلوت بیاموندې شو.نود ښځې لپاره به کامل مهر وی .حاصل داچه مصنف رحمه الله نفلی روژه د خلوت د صحت لپاره مانع نه دې شمارکړې.دلیل دادې.چه د متقی مصنفه حاکم الشهید ابوالفضل د روایت مطابق نفلی روژه بغیر د عذره افطار کول مباح دی .نو هرکله چې د نفلی روژې په افطار کې څه حرج نشته.نودا به دخلوت مانع نشی ګرځولې.علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی .چه د متقی دا روایت صرف د کامل مهر د وجوب په سلسله کې صحیح منلې شوې دې.ګنی د بعض حضراتو رائې داده.چه نفلی روژه هم د خلوت صحیحه لپاره مانع ده.ځکه چې نفلی روژه بغیر د عذره باطلول درست نه دی .

ﻓ پاتې شوه د قضاء اونذر روژه، نو په دې اړه کې دوې [دوه] روایتونه دی .یودا چې د نفلی روژې پشان د قضاء اود نذر روژه هم د خلوت صحیحه لپاره مانع نه ده. دوهم روایت دادې.چه د رمضان روژې پشان د خلوت صحیحه لپاره مانع ده.حاصل داچه د رمضان په حالت کې وطی کاوه سره کفاره هم واجبیږی . اوګناه هم لازمیږی .اود قضاء اود نذر روژې په حالت کې که وطی اوکړې شوه.نو ګناهګار به وی .خو کفاره به واجب نه وی .نو کوم کس چې دې ته اوکتل،چه ګناهګاریږی .نوده د قضاء اود نذر روژه د رمضان روژې په حکم کې اوګرځوله.د نفلی روژې په حکم کې ئې اونه ګرځوله.اوچا چې دې ته اوکتل.چه د قضاء اود نذر په روژه کې کفاره نشته.نوده د قضاء اود نذر روژه د نفلی روژې په حکم کې اوګرځوله.

وَالصَّلَاةُ بِمَنْزِلَةِ الصَّوْمِ او مونځ په منزله دَ روژې دې فَرْضُهَا كَفَرْضِهِ وَنَفْلُهَا كَنَفْلِهِ فرض ئې دَ فرض پشان ان نفل ئې دَ نفل پشان

**تشریح:**- علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی .چه لمونځ د روژې پشان دې.نوکوم حکم چې د فرض روژې وو.هغه حکم به د فرض لمونځ هم وی .او کوم چې د نفلی روژې وو.هم هغه حکم به د نفلی لمونځ هم وی .حاصل داچه فرضی روژه او فرض لمونځ د واړه د خلوت دصحت لپاره مانع دی .او دواړه نفلی (عبادتونه)د خلوت د صحت لپاره مانع نه دی .والله اعلم

## د مقطوع الذکر د خلوت نه پس،طلاق ورکولو سره د مهر حکم

وَإِذَا خَلَا الْمَجْبُوبُ بِامْرَأَتِهِ ثُمَّ طَلَّقَهَا فَلَهَا كَمَالُ الْمَهْرِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله (۱) او كله چې خلوت اوكړو مقطوع الذكر د خپلې ښځي سره بيا ئې طلاقه كړه نو دي لره واړه مهر دي په نزد دَ ابوحنيفه رحمه الله

حل اللغة: ① مجبوب: مقطوع الذكر، چه ذكرئې كټ شوې وی ② العنين: نامره، چه په جماع قادر نه وی ③ التسليم: سپارل ④ المستحق: لازم]

تشريح:- مسئله داده چه دمقطوع الذكر خلوت صحيح دې او كه فاسد؟ امام صاحب رحمه الله فرمائي. كه مقطوع الذكر خلوت اوكړو. او بيا ئې طلاق وركړو. نود ښځې لپاره به كامل مهر واجب وی. اودا به خلوت صحيحه شمارلې شي.

وَقَالَا عَلَيْهِ نِصْفُ الْمَهْرِ او صاحبين رحمهما الله فرمائي دي لره نيم مهر دې لِأَنَّهُ أَعْجَزُ مِنَ الْمَرِيضِ بِخِلَافِ الْعِنِّينِ لِأَنَّ الْحُكْمَ أُدِيرَ عَلَى سَلَامَةِ الْآلَةِ ځكه چې دغه دَ بيمارنه زيات عاجز دې په خلاف دَ عنين نه ځكه چې حكم دائر شوې دې په سلامتی دَ آله باندې

تشريح:- او صاحبين رحمهما الله فرمائي. چه دا خلوت فاسده دې. نوكه طلاق ئې وركړو. نيم مهر به واجب وی. دصاحبينو رحمهما الله دليل دادې. چه مقطوع الذكر د بيمار په مقابله كې زيات عاجز دې. ځكه چې كله كله په جماع قادر كيدلې شی. خو مقطوع الذكر بالكل د ،عدم آله، په وجه په جماع قدرت نه لری. په خلاف د عنين، چه دده خلوت صحيح دې. ځكه چې حكم د آله په سلامتيا باندې لګولې شی. اود مقطوع الذكر دسره آله نشته. نو په عنين او مقطوع الذكر كې ښكاره توپير دې. نو ددوی په حكم كې به هم توپير وی. چه د عنين خلوت به خلوت صحيحه وی. اود مقطوع الذكر خلوت به خلوت فاسده وی. عنين هغه دې. چه دې د آله باوجود په مطلق جماع باندې قدرت نه لری. بعض وائي. (عنين هغه دې) چې ثيبه سره د جماع قدرت لرلې شی. د باكره سره نشي لرلې.

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله أَنَّ الْمُسْتَحَقَّ عَلَيْهَا التَّسْلِيمُ فِي حَقِّ السَّحْقِ وَقَدْ أَتَتْ بِهِ. دَ امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې چې دَ ښځې په ذمه دَ مړلو په حق كې تسليم واجب دې او هغې دا اوكړو.

تشريح:- د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې. چه په ښځه باندې تسليم، يعنى بضع سپارل د موړلو په حق كې واجب دی. اودا د ښځې په قدرت كې دی. او داكار ښځې اوكړو. نو په سړی به كامل مهر واجب وی. اودا خلوت به خلوت صحيحه وی.

### په مذكوره صورتونوكې په ښځې دعدت وجوب

قَالَ وَعَلَيْهَا الْعِدَّةُ فِي جَمِيعِ هَذِهِ الْمَسَائِلِ احْتِيَاطًا اسْتِحْسَانًا لِتَوَهُّمِ الشُّغْلِ په ښځه عدت واجب دې په دې ټولو مسئلو كې دَ احتياط په بنا استحساناً دَ وهم دَ مشغوليت دَ رحم په وجه ،وَالْعِدَّةُ حَقُّ الشَّرْعِ وَالْوَلَدِ فَلَا يُصَدَّقُ فِي إِبْطَالِ حَقِّ الْغَيْرِ او عدت حق دَ شرع دَ ولد دواړو دې نو دَ حق دَ غير په ابطال نه شی كيداې بِخِلَافِ الْمَهْرِ لِأَنَّهُ مَالٌ لَا يُحْتَاطُ فِي إِيجَابِهِ او په خلاف دمهر ځكه چې دا داسې مال دې چې احتياط نشی كولې په واجبولو د دې كې

تشريح:- په ماقبل كې د خلوت صحيحه او خلوت فاسده حكم معلوم شو. چه خلوت صحيحه د وطی قائم مقام دې. نود خلوت صحيحه په صورت كې په خاوند باندې پوره مهر واجب كړې شوې دې. او خلوت فاسده چونكه د وطی قائم مقام نه دې. په دې وجه دخلوت فاسده په صورت كې په خاوند باندې نيم مهر واجبيږی. په دې عبارت كې بيان كړې شو. چه په پورته ذكر شوو ټولو مسئلو كې كه خلوت صحيحه موجود شوې وی. او كه خلوت فاسده، يا د ،مقطوع الذكر، سره خلوت شوې وی. په دې ټولو صورتونو كې د طلاق نه روسته

(۱) القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في فتح القدير (۳۱۸\۳) والكفاية (۲۱۸\۳) والخانية (۱۸۲\۱) وردالمحتار (۳۷۰\۲) نقلاً عن القول الراجح (۲۷۱\۱).



په ښځه باندې عدت واجبيږی. په دې صورتونو كې دعدت وجوب د احتياط په بنا (بنياد) باندې خلاف قياس دې.

حاصل د دليل دادې. چه په دې صورتونو كې د رحم مشغوليدلو وهم دې. اود وهم بنا (بنياد) دادې. چه كيداې شی د دخول په وجه، يا د موړلو په وجه منی بهيدلې وی. او رحم ته رسيدلې وی. نو احتياط هم په دې كې دې. چه عدت واجب كړې شی. اود سړی قول چه، ماوطی نه ده كړې، يا دښځې قول چه، ماسره وطی نه ده شوې، نه به قبليږی. ځكه چې عدت د شريعت اود ولد حق دې. شريعت حق خو ځكه دې. چه ښځه خاوند كه دواړه عدت ساقطول اوغواړی. نو نشی ساقطولې. اود ولد حق د هغه حديث په وجه دې. كوم چې وړاندې تيرشوې دې. چه، كوم كس په الله ﷻ او په ورځ د آخرت باندې ايمان لری. نوپه خپلو اوبوسره دې د بل كښت نه اوبه كوی ، ددې حديث مقصد، د ولد د نسب رعايت كول دی. او ښكاره خبره ده. چه دا د ولد حق دې. او قاعده ده. چه د بل حق باطلولو لپاره د هيڅ چا قول معتبر نه وی. نو كه زوجينو اتفاق اوكړو. چه وطی نه ده شوې. نود عدت په باطلولو كې به ددوی دواړو تصديق نشی كيدلې. البته په خلوت فاسده سره كامل مهر نه واجبيږی. ځكه چې مهر مال دې. اود مال په وجوب كې زيات احتياط نه كيږی.

وَذَكَرَ الْقُدُورِيُّ رحمه الله فِي شَرْحِهِ أَنَّ الْمَانِعَ إِنْ كَانَ شَرْعِيًّا او قدوری پخپله شرح كې ذكر كړی دی چې مانع كه شرعی وی كَالصَّوْمِ وَالْحَيْضِ تَجِبُ الْعِدَّةُ لِثُبُوتِ التَّمَكُّنِ حَقِيقَةً، نو واجب به وی عدت دَ قدرت ثابتيدو په وجه سره حقيقة وَإِنْ كَانَ حَقِيقِيًّا كَالْمَرَضِ وَالصِّغَرِ لَا تَجِبُ او كه مانع حقيقی وه لكه ناروغی (ناروغی (بيماری)) او وركوتوالې نو واجب به نه وی لِانْعِدَامِ التَّمَكُّنِ حَقِيقَةً دَ عدم قدرت په وجه حقيقة

تشريح:- قدوری رحمه الله په خپله شرح كې د مانع تفصيل كړې دې. فرمائي. كه مانع شرعی وی. لكه حيض او نفاس، نو عدت به واجب وی. ځكه چې د مانع شرعی په موجودګۍ كې كه خلوت موجود شی. نو شرعاً عدم قدرت كيدلې شی. خو په حقيقت كې په وطی باندې قدرت ثابت دې. نود وطی د وهم په وجه د رحم د مشغوليدلو وهم پيدا كيږی. په دې وجه به احتياطاً عدت واجب وی. اوكه مانع حقيقی وی. لكه ناروغی (ناروغی (بيماری)) يا دومره صغيره كيدل چې د جماع قابل نه وی. نوپه دې صورت كې به عدت واجب نه وی. ځكه چې د مانع حقيقی په موجودګۍ كې حقيقتاً په وطی باندې قدرت نشته. نود رحم د مشغوليدلو به هم وهم نه وی.

### د متعه د استحباب او وجوب صورتونه او اختلاف

قَالَ وَتُسْتَحَبُّ الْمُتْعَةُ لِكُلِّ مُطَلَّقَةٍ إِلَّا لِمُطَلَّقَةٍ وَاحِدَةٍ او مستحب ده متعه دَ هرې طلاقې شوې دَ پاره سوا دَ يوې مطلقې نه وَهِيَ الَّتِي طَلَّقَهَا الزَّوْجُ قَبْلَ الدُّخُولِ بِهَا وَقَدْ سَمَّى لَهَا مَهْرًا او دَغه هغه ښځه ده كومې لره چې خاوند د دخول نه مخكې طلاق وركړی دی او مهر ئې ورته مقرر كړې وی.

حل اللغة: ① اوحش: ويرولې ده ② لايجامع: نه جمع كيږی ③ الايحاش: په ويره كې اچول ④ الغرامة: تاوان]

تشريح:- د يواشتباه وضاحت: د قدوری په عبارت كې يوه اشتباه ده. اول ددې وضاحت كولې شی. اشتباه داده. چه د قدوری دا صدر كلام د هرمطلقه لپاره د متعه د استحباب په عموم باندې دلالت كوی. ځكه چې لفظ د ،كُل، چې هركله د نكره په اړخ مضاف شی. نودا د ،عموم افراد، تقاضا كوی. بيا ئې ددې نه د ،مطلقه غيرمدخول بها، استثناء كړې ده. نو دلته كې په صدر كلام او استثناء دواړو باندې اشكال دې. په استثناء كې خوځكه چې په مبسوط كې ذكر شوی دی. چه د ،مطلقه غيرمدخول بها مسمی لها، د پاره متعه مستحب ده. او په [تستحب لكل مطلقة] كې دا هم شامله ده. نو په مستثنى او مستثنى منه كې اتحاد پيدا شو. يعنى اول خودا اووئيلى شو. چه دهر مطلقه لپاره متعه مستحب ده. بيا ئې ددې مطلقه استثناء اوكړه. چه ددې مطلقه لپاره مستحب نه ده. نودا ،استثناء عن نفسه، ده. چه متعذر ده. دا داسې ده. لكه چې

څوك اوواني .[جاءني خالد إلا خالد] يعني ،ماله راغي خالد مگر خالد....نو دې ته د كم عقل توب نه سوا څه ونيلې شي.

۲ د كلام په پيل كي اشكال دادې.چه قدوري رحمه الله اوونيل.د هرمطلقه لپاره متعه مستحب ده.اوپه هره مطلقه كي ،مطلقه غير مدخول بها غير مسمى لها ، هم گډ ده.نو ددې لپاره به هم متعه مستحب وي .حالانكه داسې نه ده.بلكه ددې لپاره متعه واجب ده.په استثناء كي چې كوم اشكال وو.ددې خواب خودا دې.چه د قدوري رحمه الله په نيز په مستثنى صورت كي متعه متسحب نه ده.خكه چې قدوري رحمه الله په خپله شرح كي ذكر كړې دى.چه متعه په بعضو صورتونوكي واجب او په بعضوكي مستحب ده.نود ،مطلقه غير مدخول بها غيرمسمى لها ، لپاره واجب ده.اود هرمطلقه لپاره مستحب ده.علاوه د ،مطلقه غير مدخول بها غير مسمى لها ، نه.خكه چې ددې لپاره مستحب نه ده.بلكه واجب ده.نو اوس په مستثنى او مستثنى منه كي تغاير پيدا شو.نو ،استثناء عن نفسه، به نه لازميږي .اودا استثناء درسته ده.په پيل د كلام كي چې كوم اشكال وو.د هغې خواب دادې.چه د هرمطلقه لپاره مستحب ده.علاوه د ،مطاع غير مدخول بها غير مسمى لها، نه.خكه چې ددې حكم وړاندې تيرشوې دې.چه ددې لپاره متعه مستحب نه ده.بلكه واجب ده.نو هركله چې دوى د هر مطلقه د عموم نه دا مطلقه خارج كړله.نو اوس د كلام په پيل كي هيڅ اشكال پاته نه پاتې كيږي.

① اول داچه،مطلقه غيرمدخول بها غير مسمى لها ، وى .ددې لپاره متعه واجب ده.د قرآن د آيت ((عَلَى الْمُوسِعِ قَدَرُهُ وَعَلَى الْمُقْتِرِ قَدَرُهُ مَتَاعًا بِالْمَعْرُوفِ)) په وجه.② دويمه داچه،مطلقه مدخول بها غيرمسمى لها ، وى . ③ دريمه داچه،مطلقه مدخول بها مسمى لها ، وى .ددې دواړو لپاره متعه مستحب ده.د ((وَلِلْمُطَلَّقَاتِ مَتَاعٌ بِالْمَعْرُوفِ)) په وجه.يعنى د مطلقه ښځو لپاره متعه ده.د شرعى دستور مطابق.

④ څلورمه داچه،مطلقه غيرمدخول بها مسمى لها ، وى .ددې لپاره متعه نه واجب ده.اونه مستحب ده.هم داصورت په متن كښې مستثنى دې.دليل د ابن عمر رضي الله عنه قول دې.[لكل مطلقة متعة إلا التي فرض لها ولم يدخل بها فحسبها نصف المهر] يعنى د هرمطلقه لپاره متعه ده.مگرداچه ددې لپاره مهر مقرر شوې وى .او ددې سره دخول نه وى شوې.نو ددې لپاره نصف مهركافي دې.

| |
|---|
| وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رحمه الله تَجِبُ لِكُلِّ مُطَلَّقَةٍ إِلَّا لِهَذِهِ او امام شافعي رحمه الله فرمائى چې متعه دَ هرې مطلقې دَ پاره واجب ده پغير دَ دې نه لِأَنَّهَا وَجَبَتْ صِلَةً مِنَ الزَّوْجِ خكه چې متعه واجب شوې ده دَ خاوند دَ اړخ نه عطيه شوې خكه چې ده ښځې لره جلا كړه په وحشت كي يې واچلوله لِأَنَّهُ أَوْحَشَهَا بِالْفِرَاقِ مگر په دې صورت كي نيم مهر په طريقه دَ متعې دې، إِلَّا أَنَّ فِي هَذِهِ الصُّورَةِ نِصْفَ الْمَهْرِ طَرِيقَةُ الْمُتْعَةِ خكه چې طلاق په دې حالت كي فسخ دې او متعه مكرر كيږي نه لِأَنَّ الطَّلَاقَ فَسْخٌ فِي هَذِهِ الْحَالَةِ وَالْمُتْعَةُ لَا تَتَكَرَّرُ زمونږ دليل دا دې چې متعه د مهرِمثل خليفه ده په مفوضه كي خكه چې مهر مثل ساقط او متعه واجب شوه |

تشريح:- امام شافعي رحمه الله فرمائى .چه د هرمطلقه لپاره متعه واجب ده.خود ،مطلقه غيرمدخول بها مسمى لها ، لپاره دقول جديد مطابق متعه واجب نه ده.اود قول قديم مطابق ددې لپاره هم متعه واجب ده. او په ،مطلقه غيرمدخول بها مسمى لها،كي دواړه متفق دى .چه متعه واجب نه ده.او په پاته دوي [دوه] صورتونوكي احناف رحمهم الله د استحباب قائل دى .اوشوافع رحمهم الله دوجوب قائل دى .دامام شافعي رحمه الله دليل دادې.چه خاوند ښځه د خپل خان نه جداكړې ده.او په وحشت كي اخته كړې ده.نومونږ د جدايۍ وحشت لرې كاوه لپاره د صله اود بخشش په طور متعه واجب كړه.چه دجدايۍ د وحشت تلافى اوشى .خو په مستثنى صورت كي په دې وجه واجب نه كړې شوه.چه،مطلقه غيرمدخول بها مسمى لها ، لپاره نيم مهر د متعه په طور واجب شوې دې.خكه چې ،طلاق قبل الدخول، معنى نكاح فسخ كول دى .څكه چې په دې حالت كي د ښځې د بضع منافع سلامت ددې اړخ ته واپس راغلل.او ددې تقاضا ده.چه واړه مهر ساقط كړې شى .لكه څنگه چې د بيع په فسخ كي د مشتري د ذمه نه واړه ثمن ساقطيږي .خو شريعت نيم مهر د متعه په طور



واجب كړې دې.اوپه متعه كي تكرار نه كيږي .نوكه ددې مطلقه لپاره د نيم مهر سره متعه هم واجب كړې شى .نود متعه تكرار به لازم شى .او دا شرعاً صحيح نه دې.په دې وجه ددې مطلقه لپاره متعه واجب شوې نه ده.

| |
|---|
| وَلَنَا أَنَّ الْمُتْعَةَ خَلَفٌ عَنْ مَهْرِ الْمِثْلِ فِي الْمُفَوَّضَةِ لِأَنَّهُ سَقَطَ مَهْرُ الْمِثْلِ وَوَجَبَتِ الْمُتْعَةُ او عقد واجبوى عوض لره نو شى به دا خليفه او خليفه نه دَ اصل سره جمع كيداې شي او نه يې دَ يو جزء سره وَالْعَقْدُ يُوجِبُ الْعِوَضَ فَكَانَ خَلَفًا وَالْخَلَفُ لَا يُجَامِعُ الْأَصْلَ وَلَا شَيْئًا مِنْهُ نو واجب به نه وى دَ جزء دَ مهر دَ وجوب سره او خاوند جنايت كوونكې نه دې په مبتلاكولودَ وحشت كي فَلَا تَجِبُ مَعَ وُجُوبِ شَيْءٍ مِنَ الْمَهْرِ په دې وجه تاوان هم په دهٔ پورې نه ملحق كيږي |

تشريح:-زمونږ د دليل نه وړاندې دا په ذهن كي كينوئ.چه عقدنكاح د عوض نه خالى كيداې نشى .د ((أَنْ تَبْتَغُوا بِأَمْوَالِكُمْ)) په وجه به يا عوض مسمى وى .يا به مهر مثل وى .دويمه خبره داچه خليفه اصل سره نشى جمع كيدلې.اونه د اصل د جزء سره جمع كيدلې شى .لكه چې تيمم د اودس سره نشى جمع كيدلې.اوس به د دليل حاصل داوى .چه د ،مطلقه غيرمدخول بها غير مسمى لها ، په حق كي متعه د مهرمثل خليفه ده.خكه چې د ،طلاق قبل الدخول، په وجه سره مهرمثل ساقط شو.اود عقدنكاح لپاره عوض ضرورى وى .نود مهرمثل خليفه يعنى متع به واجب وى .او په پاته درې صورتونوكي به متعه څكه نشى واجب كيدلې.چه مونږ قاعده بيان كړله.چه خليفه نه د اصل سره جمع كيدلې شى .نه ددې د څه جزء سره جمع كيدلې شى .نو،مطلقه مدخول بها مسمى لها،او،مطلقه مدخول بها غيرمسمى لها ، لپاره كه متعه واجب كړې شوه.نود خليفه به د اصل يعنى د كل مسمى يا د مهرمثل سره جمع كيدل لازميږي .او كه،مطلقه غيرمدخول بها مسمى لها ، لپاره متعه واجب كړې شوه.نود خليفه د جزء اواصل يعنى د نيم مهر سره جمع كيدل به لازم شى .اودا واړه صورتونه د قاعدې خلاف دى .په دې وجه به په دې درې واړه صورتونوكي متعه واجب نه وى .

| |
|---|
| وَهُوَ غَيْرُ جَانٍ فِي الْإِيحَاشِ فَلَا تَلْحَقُهُ الْغَرَامَةُ بِهِ فَكَانَ مِنْ بَابِ الْفَضْلِ نو متعه به دَ باب دَ فضل نه وى . |

تشريح:- په دې عبارت سره علامه مرغينانى رحمه الله د امام شافعي رحمه الله د دليل ځواب وركړې دې.د ځواب حاصل دادې.چه دا خو منو.چه ښځه ئې د جدايۍ په وجه په وحشت كي اچولې ده.خوپه دې وحشت كي دې جانى يعنى جنايت كونكې نه دې.څكه چې شريعت ده ته د طلاق ور كاوه اجازت وركړې دې.بلكه په بعضو صورتونوكي طلاق وركول مستحب دى .مثلاً چې كله ښځه ،تارك الصلاة، وى .او په پوهولو باندې د خاوند اطاعت هم نه كوى .نو كوم عمل چې د شريعت په اجازت سره حاصل شى .دهغې كونكې جانى نه شى شمارلې.نو هركله چې خاوند په طلاق ور كاوه سره څه جنايت نه دې كړې.نو په ده باندې به د طلاق په وركولو،او په وحشت كي د اچولو په وجه تاوان هم واجب نه وى .نودا متعه به د باب احساب.د قبيلې څنې وى .د تاوان د قبيلې څنې به نه وى .نودې ته مستحب خو ونيلې شى .واجب نشى ونيلې كيدلې.نود امام شافعي رحمه الله په دې صورتونو د متعه واجب گرځول درست نه دى .والله اعلم بالصواب

## د نكاح شغار مفهوم اوحكم

| |
|---|
| وَإِذَا زَوَّجَ الرَّجُلُ بِنْتَهُ عَلَى أَنْ يُزَوِّجَهُ الْآخَرُ بِنْتَهُ أَوْ أُخْتَهُ لِيَكُونَ أَحَدُ الْعَقْدَيْنِ عِوَضًا عَنِ الْآخَرِ هر كله چې وادهٔ او كړو چا د خپلې لور په دې شرط چې هغه به خپله لور او يا خور دهٔ ته وركوى چې شى يو د عقدينو نه عوض د بل فَالْعَقْدَانِ جَائِزَانِ، وَلِكُلِّ وَاحِدَةٍ مِنْهُمَا مَهْرُ مِثْلِهَا نو دواړه عقدونه جائز دى او په دوى كي به دَ هرې يوې دَ پاره مهر مثل وى |

تشريح:-صورت د مسئلې دادې.چه حامد د خپلې لور نكاح ماجد سره په دې شرط اوكړه.چه ماجد به د خپلې لور نكاح د حامد سره كوى .چه ،احد البضعين، د آخر لپاره مهر شى .يعنى د حامد د لور مهر به د ماجد د لور ملك بضع وى .اود ماجد د لور مهر به د حامد د لور ملك بضع وى .دې نكاح ته نكاح شغار وائى .شغار

د ،شغور، نه ماخوذ دي.اود شغور معنی ده رفع او اخلاء، یعنی اوچتول او خالی کول.چه د رفع معنی واخستلې شی .نو وجه د تسمیه به دا وی .چه زوجینو چونکه مهر د عقد نه اوچت کړلو.په دې وجه ددې نکاح نو شغار کیخودلې شو.او که ددې معنی اخلاء وی . یعنی خالی کول.نو وجه د تسمیه به داوی .چه دا نکاح چونکه د مهر نه خالی ده.په دې وجه دې نکاح ته نکاح شغار ونیلې شی .اود بعضو رائې داده.چه د شغار معنی ده، بعد، یعنی لرې والې.په دې صورت کې به وجه د تسمیه داوی .چه ګویا زوجینو د مهر نفی اوکړه.نود حق نه لرې شوی دی .په دې وجه ددې نوم نکاح شغار ایخودلې دی.

ﷲ نکاح شغار د احنافو رحمهم الله په نیز صحیح ده.خود دواړو ښځو لپاره به مهر مثل واجب وی .

**وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رحمه الله بَطَلَ الْعَقْدَانِ لِأَنَّهُ جَعَلَ نِصْفَ الْبُضْعِ صَدَاقًا وَالنِّصْفَ مَنْكُوحَةً** او امام شافعی رحمه الله فرمائی چې دواړه عقدونه باطل دی ځکه چې د هغې نیمه بضع مهر جوړ کړو او نیمه بضع منکوحه **وَلَا اشْتِرَاكَ فِي هَذَا الْبَابِ فَبَطَلَ الْإِيجَابُ** او په دې باب کې هیڅ اشتراک نشته نو ایجاب باطل شو

**تشریح:-** او امام شافعی رحمه الله فرمائی .چه دواړه عقدونه باطل دی .صاحب دهدایه رحمه الله د امام شافعی رحمه الله د لیل عقلی خوبیان کړې دې.خو ددوې په تائید کې چې کوم حدیثونه دی .هغه ئې نه دی ذکر کړی .حالانکه دوې [دوه] حدیثونه ددوی مستدل جوړیدلې شی .رومبې د ابن عمر رضی الله عنهما حدیث [لا شغار فی الإسلام] یعنی په اسلام کې د نکاح شغار هیڅ ګنجانش نشته.ترمذی رحمه الله هم دا حدیث د عمران بن حصین رضی الله عنه نه روایت کړې دې.او دوهم حدیث د جابر رضی الله عنه دې.کوم چې مسلم روایت کړې دې.د حدیث الفاظ دادی .[نهی رسول الله ﷺ عن الشغار] یعنی نبی کریم ﷺ د نکاح شغار نه منع فرمائیلې ده.دا دواړه حدیثونه د نکاح شغار په عدم جواز باندې شاهد عدل دی .

ﷲ د امام شافعی رحمه الله عقلی دلیل دادې.چه کوم کس دخپلې لور د بل سړی سره نکاح اوکړه.په دې شرط چې دې به د خپلې لور نکاح زما سره کوی .نوګویا په دې دواړه جینکو کې د هر یوې نصف بضع مهر اونصف آخر(د بضع) منکوح جوړشو.حاصل داچه د هریوې بضع د خاند او دده د لور په مینځ کې شریکه شوې ده.نصف بضع به د نکاح په وجه د خاوند لپاره وی .او نصف به دمهر په وجه دده د لور لپاره وی .نو اشتراک لازمیږی .او منافع د بضع مشترک نشی کیدلې.لکه ځنګه چې یوه ښځه د دوې [دوه] سړو سره نکاح اوکړی .اودا صحیح نه وی .نو هرکله چې اشتراک صحیح نه دې.نو ایجاب باطل شو.او هرکله چې ایجاب باطل شو.نو عقد هم باطل شو.په دې وجه د امام شافعی رحمه الله په نیز دواړه عقدونه باطل دی .

**وَلَنَا أَنَّهُ سَمَّى مَا لَا يَصْلُحُ صَدَاقًا فَيَصِحُّ الْعَقْدُ وَيَجِبُ مَهْرُ الْمِثْلِ** زموږ د لیل دا دې چې ده داسې شې ذکر کړې دې چې د مهر جوړیدو صلاحیت نه لری نو عقد صحیح شو او واجب شو مهر مثل **كَمَا إِذَا سَمَّى الْخَمْرَ وَالْخِنْزِيرَ وَلَا شَرِكَةَ بِدُونِ الِاسْتِحْقَاقِ** لکه چې څوک شراب او خنزیر ذکر کړی او پغیر د استحقاق نه شرکت نه وی .

**تشریح:-** او زموږ دلیل دادې.چه په دې دواړه عقدونوکې داسې شی مهر جوړشوې دې.کوم چې د مهر جوړولو صلاحیت نه لری .او قاعده ده.چه کوم شی د مهر صلاحیت نه لری .که دا مهرجوړ کړې شی .نو عقد د نکاح به صحیح وی .او مهر مثل به واجب وی .مثلاً خمر اوخنزیر مهر جوړ کړې شی .نو نکاح به صحیح وی .او مهر مثل به واجب وی .دغه ډول دلته کې هم وی .

ﷲ د امام شافعی رحمه الله د عقلی دلیل ځواب دادې.چه هرکله بضع د مهرجوړولو صلاحیت نه لری .نو اشتراک به هم نه متحقق کیږی .ځکه چې د یوې ښځې د بضع منافع د بلې ښځې مملوك نشی جوړیدلې.نو هرکله چې شرکت ثابت نشو.نو بضع د مهر جوړولو شرط به شرط فاسد وی .او نکاح په شرط فاسد سره نه باطلیږی .بلکه پخپله شروط فاسده باطلیږی .نو په دې نکاح شغار کې به هم د بضع د مهر جوړولو شرط به باطل وی .او نکاح به درست وی .او په خاوند به مهرمثل واجب وی .



ﷲ د امام شافعی رحمه الله د اړخه د پیش شوی حدیث ځواب دادې.چه نهی عین د نکاح لپاره نه ده.بلکه په حدیث کې نهی وارد شوې ده.دنکاح د مهرمسمی کاوه نه د خالی کاوه په وجه.مطلب دادې.چه د نبی کریم ﷺ مقصد عین نکاح نه منع کول نه دی .بلکه ددې ممانعت ئې فرمائیلې دې چه نکاح د مهر مسمی کاوه نه خالی اوساتلې شی .اود مهرمسمی کاوه نه که نکاح خالی اوساتلې شوه.نو په دې سره نکاح نه باطلیږی لکه څنګه چې د جمعة د اذان نه روسته د بیع نه منع شوې ده.نو دلته کې نفس بیع ممنوع نه ده.بلکه د جمعة د اذان نه روسته ممنوع ده.

## د قرآن تعلیم یا دښځې خدمت کول مهر مقرر کول

**وَإِنْ تَزَوَّجَ حُرٌّ امْرَأَةً عَلَى خِدْمَتِهِ إِيَّاهَا سَنَةً أَوْ عَلَى تَعْلِيمِ الْقُرْآنِ فَلَهَا مَهْرُ مِثْلِهَا** (١)که وادة او کړه آزاد سړی د یوې ښځې سره د یو کال په خدمت باند دې لره او یا په تعلیم ور کاوه د قران نو دې لره مهر مثل خپل دی **وَقَالَ مُحَمَّدٌ رحمه الله لَهَا قِيمَةُ خِدْمَتِهِ** امام محمد رحمه الله فرمائی چې د حُر د خدمت قیمت به وی **وَإِنْ تَزَوَّجَ عَبْدٌ امْرَأَةً بِإِذْنِ مَوْلَاهُ عَلَى خِدْمَتِهِ سَنَةً جَازَ وَلَهَا خِدْمَتُهُ** و که نکاح اوکړو غلام د یو ښځې سره په اجازت د مولی خپل د یو کال په خدمت باند نو جائز دې او ښځې لره به د غلام خدمت وی

**حل اللغة:** (١)الاغنام:جمع د غنم،بیزه،وزه (٢) التسلیم:سپارل (٣) تقوم:قیمت لګول]

**تشریح:-** مسئله داده.چه آزاد سړی د یوې ښځې سره نکاح اوکړه.او مهر ئې دا جوړکړو.چه زه به یوکال د ښځې خدمت کوم.یا ئې د قرآن تعلیم مهر جوړ کړو.یعنی دا ئې اووئیل.چه زه به خپلې ښځې ته د قرآن پاك تعلیم ورکوم.زما د اړخه هم دا مهر دې.په دې دواړه صورتونوکې به د شیخینو رحمهما الله په نیز مهر مثل واجب وی .او امام محمد رحمه الله فرمائی .چه د آزاد خاوند د خدمت قیمت به واجب وی .اوکه غلام د خپل مولا په اجازت سره نکاح اوکړه.اود خپل یوکال خدمت ئې مهرجوړ کړو.نود غلام خدمت مهر جوړول جائزدی .اود ښځې لپاره به صرف خدمت وی .

**وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رحمه الله لَهَا تَعْلِيمُ الْقُرْآنِ وَالْخِدْمَةُ فِي الْوَجْهَيْنِ؛ لِأَنَّ مَا يَصِحُّ أَخْذُ الْعِوَضِ عَنْهُ بِالشَّرْطِ يَصْلُحُ مَهْرًا عِنْدَهُ؛** او شافعی رحمه الله فرمائی چې د ښځې د پاره به تعلیم د قران او خدمت وی په دواړو صورتو نو کې ځکه چې د شرط سره کوم شی عوض اغستې شی هغه شی د ده په نزد مهر کیداې شی **لِأَنَّ بِذَلِكَ تَتَحَقَّقُ الْمُعَاوَضَةُ، وَصَارَ كَمَا إِذَا تَزَوَّجَهَا عَلَى خِدْمَةِ حُرٍّ آخَرَ أَوْ عَلَى رَعْيِ الزَّوْجِ غَنَمَهَا** ځکه چې په دې سره معاوضه متحقق کیږی لکه چې نکاح ئې کړې وی د ښځې سره د بل حُر په خدمت باند په رضا سره او د خاوند د ښځې په بیزو څرولو باندې

**تشریح:-** د امام شافعی رحمه الله مذهب دادې.چه تعلیم د قرآن اود آزاد اوغلام دواړو خدمت مهرجوړول صحیح دی .د امام شافعی رحمه الله دلیل دادې.چه عقد د نکاح عقد معاوضه دې.نو کوم څیزچه معوض جوړیدلې شی .یعنی د هغې عوض اخستلې شی .نو هغه شی په عقد د نکاح کې عوض یعنی مهر جوړیدلې شی .چه د عوض معنی متحقق شی .او چونکه تعلیم د قرآن اود خدمت دواړو عوض اخستلې شی .نودا دواړه پخپله عوض یعنی مهر هم جوړیدلې شی .نودا داسې شوه.لکه د بل آزاد سړی خدمت مهر جوړول.اود خاوند د ښځې د چیلو پووول مهر جوړول.او چونکه دا دواړه صورتونه په اتفاق سره جائز دی .نو تعلیم د قرآن او خدمت د آزاد سړی ، مهر جوړول به هم جائز وی .

**وَلَنَا أَنَّ الْمَشْرُوعَ هُوَ الِابْتِغَاءُ بِالْمَالِ وَالتَّعْلِيمُ لَيْسَ بِمَالٍ** زموږ دلیل دا دې چې مشروع ابتغاء ده په مال سره او تعلیم مال نه دې **وَكَذَلِكَ الْمَنَافِعُ عَلَى أَصْلِنَا وَخِدْمَةُ الْعَبْدِ ابْتِغَاءٌ بِالْمَالِ لِتَضَمُّنِهِ تَسْلِيمَ رَقَبَتِهِ وَلَا كَذَلِكَ الْحُرُّ** او دغه ډول

(١) القول الراجح هو قول الشیخین رحمهما الله کذا فی الخانیة (١\١٧٤) وردالمحتار(٢\٣٦٢) والهندیة (١\٣٠٢) نقلاً عن القول الراجح (١\٢٧٣)-

مناقع زمونږ په اصل باند او خدمت د عبدابتغاء بالمال ده د متضمن کیدو د تسلیم د رقبه کیدو په وجه سره او آزاد داسې نه دی. **وَلِأَنَّ خِدْمَةَ الزَّوْجِ الْحُرِّ لَا يَجُوزُ اسْتِحْقَاقُهَا بِعَقْدِ النِّكَاحِ لِمَا فِيهِ مِنْ قَلْبِ الْمَوْضُوعِ** او ځکه چې د عقد د نکاح په وجه د آزاد خاوند د خدمت استحقاق ښځې لره نه دې جائز ځکه چې په دې کې قلب موضوع ده **بِخِلَافِ خِدْمَةِ حُرٍّ آخَرَ بِرِضَاهُ لِأَنَّهُ لَا مُنَاقَضَةَ** په خلاف د بل آزاد د خدمت نه د ده په رضا سره ځکه چې په دې کې څه مناقضه نشته **وَبِخِلَافِ خِدْمَةِ الْعَبْدِ لِأَنَّهُ يَخْدُمُ مَوْلَاهُ مَعْنًى حَيْثُ يَخْدُمُهَا بِإِذْنِهِ وَبِأَمْرِهِ** او په خلاف د خدمت د غلام نه ځکه چې دغه په حقیقت کې د خپل مولی خدمت کوی ځکه چې دی ئې خدمت د آقا په حکم او اجازت سره کوی **وَبِخِلَافِ رَعْيِ الْأَغْنَامِ لِأَنَّهُ مِنْ بَابِ الْقِيَامِ بِأُمُورِ الزَّوْجِيَّةِ فَلَا مُنَاقَضَةَ عَلَى أَنَّهُ مَمْنُوعٌ فِي رِوَايَةٍ** او په خلاف د بیزو څرولو نه ځکه چې دا د کور د امورو د انتظام نه دې نو هیڅ مناقضه پکې نشته علاوه د دې نه چې دا ممنوع ده په یو روایت کې

حل اللغة: ① الابتغاء: طلب ② المناقضة: منافات، مخالفت]

تشریح:- او زمونږ دلیل دادې چه په عقد د نکاح کې ابتغاء بالمال مشروع ده. د ((أَنْ تَبْتَغُوا بِأَمْوَالِكُمْ)) په وجه. او تعلیم د قرآن مال نه دې. نو د قرآن د تعلیم په عوض به ابتغاء مشروع نه وی. او هم دغه ډول منافع زمونږ په اصل باندې مال نه دې. ځکه چې د تمول (مال) لپاره ضروری دی. چه په دوې [دوه] زمانوکې پاته پاتې شی. او منافع د خدمت په دوې [دوه] زمانوکې پاته نه پاتې کیږی. په دې وجه مونږ وایو. چه خدمت هم مال نه دې. نو په خدمت سره به هم ابتغاء مشروع نه وی.

دا خبره دې واضحه وی. چه ددې دلیل په بنا (بنیاد) باندې د بل آزاد کس خدمت اووزه څرول، به مهرجوړول درست نه وی. ځکه چې دا هم منافع دی. او زمونږ په نیز د غلام خدمت مهرجوړول، ځکه درست دی. چه د غلام خدمت ابتغاء بالمال ده. او د غلام خدمت مال ځکه دې. چې کله غلام خدمت کوی. نو ګویا چې ده خپل ځان اوسپارلو. او د غلام رقبه مال دې. نو په دې صورت کې به مهر مال وی. غیر مال به نه وی. او آزاد داسې نه دې. چه کله خدمت کوی. نو ګویا چې خپل ځان به ئې سپارلې وی. نو د آزاد خدمت به مال نه وی. دوهم دلیل دادې. چه د آزاد سړی خدمت که مهر جوړ کړې شو. نو ښځه د عقد نکاح په وجه مستحق نشی کیدلې. ځکه چې په دې استحقاق کې قلب د موضوع ده. قلب د موضوع په دې وجه ده. چه ښځه خادمه جوړشی. او سړې مخدوم وی. اوس که د سړی خدمت مهر جوړ کړې شو. نو ښځه مخدومه او سړې به خادم جوړشی. او دا په اتفاق سره د نکاح د موضوع خلاف دی. امام شافعی رحمه الله قیاس کړې وو. د دوهم آزاد په خدمت باندې. چه لکه څنګه د بل آزاد سړی خدمت ددې په رضامندئ سره مهرجوړیدلې شی. آزاد خاوند خدمت هم مهر جوړیدلې شي. زمونږ د اړخه ددې خواب دادې. چه د بل آزاد کس خدمت مهر جوړول په دې وجه درست دی. چه دغه حر آخر به خپل رقبه سپاری. لکه چې څوك آزاد په اجاره باندې واخستلې شی. نو حر مستاجر خپله رقبه سپاری. او اصل خبره داده. چه په دې کې قلب موضوع ده. چه مخدوم خادم جوړشو. او خادمه مخدومه جوړه شوه. ددې نه علاوه زمونږ په نیز د یو روایت په مطابق د حر آخر خدمت هم مهرجوړول درست نه دی. نو په دې باندې به هم قیاس کول درست نه وی. (فتح القدیر)

او پاتې شوه داچه د غلام خدمت په مهر جوړولو کې هم قلب د موضوع لازمیږی. نو مونږ خواب ورکوو. چې په دې صورت کې قلب د موضوع نه لازمیږی. ځکه چې غلام په حقیقت کې دخپل مولا خدمت کوی. او د غلام داخدمت د خپل مولا د اجازت په حکم سره دې. او هر کله چې غلام دخپل مولا خدمت کوی. د خپلې ښځې نه کوی. نو بیا قلب د موضوع نه راځی. ځکه چې قلب دموضوع به خو هغه وخت وې. که د خپلې ښځې خدمت ئې کولو او په چیلو څرولو باندې قیاس کول هم صحیح نه دی. اول خو په دې وجه چې خاوند له د خپلې ښځې وزه پوول د خدمت د قبیلې څنې نه دی. بلکه داخو د کور په کارونو کې یو کار



دې. او هر کله چې وزه څرول، د مبسوط د یو روایت مطابق مهر ګرځول درست نه دی. نو ددې روایت مطابق به په دې باندې قیاس کول هم درست نه وی.

د مصنف رحمه الله په عبارت کې تسامح ده. ځکه چې په دلیل کې اوونیلی شو. چه [ولنا أن المشروع.... إلخ] مونږ سوال کوو. چه امام محمد رحمه الله د مصنف رحمه الله په قول [ولنا] کې داخل دې او که خارج دې؟ که تاسو ئې داخل منئ. نو د مصنف رحمه الله قول [ثم علی قول محمد رحمه الله تجب فيه الخدمة لأن المسمى مال] ددې مناقض دې. ځکه چې مخکې د امام محمد رحمه الله په قول باندې خدمت ته غیر مال اوونیلی شو. او دلته کې ورته مال وائی. او که امام محمد رحمه الله د مصنف رحمه الله د قول، ولنا، نه خارج دې. نو مناسب داوو. چه مصنف رحمه الله د، ولنا، په ځائې [ولهما] وې.

خواب: دادې. چه تعلیم د قرآن اړخ ته نسبت کاوه سره امام محمد رحمه الله د، ولنا، نه خارج دې. ځکه چې خدمت د امام محمد رحمه الله په نیز مال دې. نو اوس هیڅ تسامح پاتې نشوه.

**ثُمَّ عَلَى قَوْلِ مُحَمَّدٍ** رحمه الله **تَجِبُ قِيمَةُ الْخِدْمَةِ لِأَنَّ الْمُسَمَّى مَالٌ** بیا په قول د امام محمد رحمه الله د خدمت قیمت به واجب وی ځکه چې مسمي مال دې **إِلَّا أَنَّهُ عَجَزَ عَنِ التَّسْلِيمِ لِمَكَانِ الْمُنَاقَضَةِ فَصَارَ كَالتَّزَوُّجِ عَلَى عَبْدِ الْغَيْرِ** مګر خاوند د تسلیم نه عاجز دې د مناقضې په وجه سره نو دا په عبد د غیر د نکاح کاوه پشان شوه

تشریح:- بهرحال د امام محمد رحمه الله د قول په بناء باندې خدمت مهر جوړول صحیح نه دی. خو په خاوند باندې به خدمت واجب نه وی. بلکه ددې قیمت به واجب وی. دلیل دادې. چه مسمی یعنی خدمت مال خودې. خو ددې د سپارلو نه خاوند عاجز دې. ځکه چې د خدمت کاوه په صورت کې قلب د موضوع لازمیږی. او قاعده ده. چه څوك د مهرمسمی د سپارلو نه عاجز شی. نو ددې قیمت واجبیږی. لکه مثلاً که یوکس د غیرغلام مهر جوړ کړلو. نو په دې صورت کې به د غیر د غلام خدمت واجب وی. ځکه چې دې د غیر غلام سپارلو نه عاجز دې.

**وَعَلَى قَوْلِ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُمَا اللهُ يَجِبُ مَهْرُ الْمِثْلِ لِأَنَّ الْخِدْمَةَ لَيْسَتْ بِمَالٍ** او د شیخینو په قول باند به مهر مثل واجب وی ځکه چې خدمت مال نه دې **إِذْ لَا تُسْتَحَقُّ فِيهِ بِحَالٍ فَصَارَ كَتَسْمِيَةِ الْخَمْرِ وَالْخِنْزِيرِ** په دې وجه په نکاح کې د دې استحقاق په هیڅ مال کې هم نشته نو دا د خمرو او خنزیر د تسمیه پشان شوه

تشریح:- دشیخینو رحمهما الله د قول په بنا (بنیاد) باندې به مهرمثل واجب وی. ځکه چې د آزاد خدمت مالی نه دې. او د مال نه کیدلو وجه داده. چه په نکاح ښځې ته دخدمت په هیڅ حال کې حق نشته. که خدمت مال وې. نو ددې حق به هم ضرور وو. بعضو شارحینو بیان کړی دی. چه دلته کې کلمه د ،او، ده. اصل عبارت داسې وو. [لأن الخدمة ليست بمال او لايستحق فيه بحال] په دې صورت کې به مطلب داوی. چه دمصنف رحمه الله قول [لأن الخدمت ليست بمال] او [لايستحق فيه بحال] دواړه په وجوب د مهرمثل باندې دلیل دې. او په قول اول سره به اشاره وی. د مصنف رحمه الله قول [ولنا أن المشروع هو الإبتغاء بالمال] اړخ ته. او په ثانی سره به اشاره وی. د مصنف رحمه الله قول [ولأن خدمة الزوج الحر لايجوز استحقاقها بعقدالنكاح] اړخه ته. نو لکه څنګه چې د خمر او خنزیر مسمی کاوه په صورت کې مهر مثل واجبیږی. دغه ډول که خدمت مهرجوړ کړې شی. نو په دې صورت کې به هم مهرمثل واجب وی.

**وَهَذَا لِأَنَّ تَقَوُّمَهُ بِالْعَقْدِ لِلضَّرُورَةِ، فَإِذَا لَمْ يَجِبْ تَسْلِيمُهُ بِالْعَقْدِ لَمْ يَظْهَرْ تَقَوُّمُهُ** او دا ځکه چې د خدمت قیمتی کیدل په عقد (اجاره) کې په وجه د اړتیا دی او هر کله چې په عقد (نکاح) کې د دې تسلیم واجب نه شو نو د دې تقوم ظاهر نه شو **فَيَبْقَى الْحُكْمُ لِلْأَصْلِ وَهُوَ مَهْرُ الْمِثْلِ** په دې وجه حکم به په اصل باند پاته وی او هغه مهر مثل دې.

حل اللغة: ① تقوم: قابل د قیمت، قیمتی ]

تشریح:- دا عبارت د یواشكال ځواب دی.اشكال دادی.چه په احنافو رحمهم الله كي شیخینو رحمهما الله خدمت مهرجوړولو په صورت كي مهرمثل ځكه واجب كړی دی.چه د حرخدمت مال متقوم نه دی.خو موږ پوښتنه كوو.چه د آزدیٔ خدمت مال متقوم نه دی.نو بیا آزاد په اجاره باندی وركول څنګه درست دی ؟حالانكه آزاد په اجرت باندی وركولی شی .ځواب د آزاد سړی خدمت په عقد اجاره كي متقوم كیدل صرف د خلګو اړتیا پوره كاوه لپاره دی .ګني خدمت متقوم نه دی.نو اوس به اشكال نه وی .اوس موږ وایو.چه هركله د قلب موضوع په وجه په عقدنكاح كي د آزاد خدمت سپارل جائز نه دی .نود آزادسړی خدمت مال متقوم كیدل هم ښكاره نه دی.نو حكم به په اصل باندی پاته پاتی وی .نو په دی صورت كي به مهرمثل واجب وی .

## دمهر وصولولو نه روسته خاوند ته هبه كول،بیا قبل الدخول طلاق واقع كیدل

فإن تزوجها على ألف نو كه د ښځي سره ئ نكاح او كړو په زرو باند فقبضتها ووهبتها له ثم طلقها قبل الدخول بها او ښځي دغه قبضه كړي او خاوند ته ئ هبه كړي بیا خاوند طلاقه كړه قبل د دخول نه رجع عليها بخمسمائة نو خاوند به د ښځي نه پنځه سوه اخلی لأنه لم يصل إليه بالهبة عين ما يستوجبه ځكه چي نه دی رسیدلی خاوند ته په هبه سره عین هغه د كومو چي دی مستحق شوی دی لأن الدراهم والدنانير لا تتعينان في العقود والفسوخ ځكه دراهم او دنا نیر نه دی متعین په عقود او فسوخ كي

حل اللغة* ① الدنانیر:جمع د دینار،اشرفی؛ ② العقود:جمع د عقد،معامله.]

تشریح:- ددی مسئلی اول ویش دادی.چه دښځي سره نكاح یاخو په داسی شی سره اوشوه.چه دا په متعین كاوه سره نه متعین كیږی .لكه نقود یا په داسی شی سره اوشوه.چه په متعین كولوسره متعین كیږی .لكه غنم، اووښي وغیره شیان (څیزونه ).بیا په دی دواړوكي د هر یو دوی [دوه] صورتونه دی..یا خو به ښځي په مهر باندی قبضه كړی وی .او یا به ئي نه وی كړی.او په دی دواړو كي بیاد هر یو دوی [دوه] صورتونه دی ښځي به یا واړه مهرهبه كړی وی .او یابعض مهر.

اد تولو نه مخكي ئي دامسئله بیان كړی ده.چه د ښځي سره په داسی شی باندی نكاح اوكړه.چه دا په متعین كولوسره نه متعین كیږی .اوهغه زر درهم دی .بیا ښځي په دی باندی قبضه اوكړه.او بیا یي خاوند ته پوره زر درهمه هبه وركړل بیا ،طلاق قبل الدخول، واقع شو.نو ددی حكم دادی.چه خاوند دی د ښځي نه پنځه سوه درهم واپس واخلی .د دلیل نه وړاندی په دی پوهه شئ.چه دراهم او دنانیر په ،عقود اوفسوخ، كي متعین كاوه سره نه متعین كیږی .مثلاً یوكس په لاس كي دراهم واخستل.او وی وئیل.چه ددی دراهمو په عوض ما دا سامان واخستلو.بائع قبول كړو.نو اوس مشتری ته اختیار دی.چه كوم دراهم ئي متعین كړی وو هم هغه وركړی .یا نور وركړی .یا مثلاً د عقد بیع مكمل كیدلو نه روسته اقاله، یعنی د بیع فسخ ئي اوكړه.نو بائع دی یا هم هغه روپئ واپس كړی .كومی چي مشتری وركړی وی.یا دی نوری واپس كړی .دواړه صحیح دی.

ااوس به د دلیل حاصل داوی .چه خاوند د ،طلاق قبل الدخول، په وجه د نصف مقبوض مستحق دی.اود ښځي په هبه كاوه سره خاوند ته بعینه هم هغه اونه رسیدلو.د كومی چي خاوند مستحق شوی وو.ځكه چي دراهم او دنانیر په متعین كولوسره نه متعین كیږی .نود ښځي د اړخه د زرو روپو هبه داسی ده.لكه چي د مقبوض نه علاوه ئي نوری زر روپئ هبه كړی وی .اوهركله چي خاوند ته هغه نصف مهر اونه رسیدلو.دكوم چي دی مستحق وو نو بیا به خاوند لپاره د ښځي نه د نصف مهر واپس اخستلو اختیار پاته پاتی وی .

وكذا إذا كان المهر مكيلا أو موزونا أو شيئا آخر في الذمة لعدم تعينها او دغسی ده هر كله چي مهر وه مكیلی یا بل څه موزون شی په ذمه باند د متعیین نه كیدو په وجه سره

تشریح:- اوهم دا حكم هغه وخت دی چه كله مهر جوړ كړی .څه مكیلی څیز.یاد دراهمو او دنانیرو نه علاوه څه



بل څه موزونی څیز.خودا مكیلی یا موزونی څیزد خاوند په ذمه دی.او دائی متعین كړی نه دی.ځكه كه مكیلی یا موزونی شی مشارالیه دی.نودا متعین كیږی .ددی به دا حكم نه وی .

اابغیر د قبضه كولو خاوند ته مهرهبه كول،بیا قبل الدخول طلاق واقع كیدل

فإن لم تقبض الألف حتى وهبتها له ثم طلقها قبل الدخول بها او كه ښځي لاتر اوسه په هزارو قبضه نه وه كړی تر دی چي خاوند ته ئ هبه كړی بیا هغه قبل الد خول طلاقه كړه لم يرجع واحد منهما على صاحبه بشيء نو په دی دواړو كي به یو د خپل اندیوالان نه څۀ نۀ اخلی

تشریح:- دوهم صورت دادی.كه ښځي بغیر د قبضه كاوه نه زر دراهم هبه كړل.او بیا ،طلاق قبل الدخول، واقع شو.نو په زوجینو كي به هیڅ څوك په بل باندی رجوع نه كوی .

وفي القياس يرجع عليها بنصف الصداق او قیاس دا دی چي خاوند به دښځي نه نیم مهر واپس اخلی وهو قول زفر رحمه الله او دا د امام زفر رحمه الله قول دی لأنه سلم المهر له بالإبراء ځكه چي مهر خاوند لره سالم شوی دی په بری كیدو سره فلا تبرأ عما يستحقه بالطلاق قبل الدخول نو ښځه به بری نه وی د هغی نه د كوم چي مستحق دی خاوند د طلاق قبل الدخول په وجه

حل اللغة* ① الابراء: بری كول ② الصداق: مهر]

تشریح:- اود قیاس تقاضا داده.چه خاوند په نیم مهر باندی رجوع كوی .اود قیاس تقاضا داده.چه خاوند د نیم رجوع اوكړی .هم دا قول د امام زفر رحمه الله دی.د امام زفر رحمه الله دلیل دادی.چه ښځي بغیرد قبضه كاوه نه خاوند د مهر نه بری كړلو.اود ښځي په بری كاوه سره چي كومی زر روپئ خاوند لپاره سلامت پاتی شوی.هغه غیر دی. دهغه نه.دكومی چي خاوند د ،طلاق قبل الدخول، په وجه مستحق شوی وو.یعنی د نصف مهر نه بری الذمه كیدل.نو هركله چي د خاوند لپاره ددی غیر سلامت پاتی شو.د كومی چي خاوند مستحق شوی وو.نو ښځه به ددی نیم مهر نه بری نه وی .د كومی چي خاوند د ،طلاق قبل الدخول، په وجه مستحق شوی دی.په دی وجه زموږ مذهب دادی.چه خاوند ته به په دی صورت كي هم د نیم مهر واپس اخستلو حق حاصل وی .

وجه الاستحسان أنه وصل إليه عين ما يستحقه بالطلاق قبل الدخول او وجه د استحسان دا ده چي خاوند ته بعینه هغه او رسیدل د كوم چي دی د طلاق قبل الدخول په سبب سره مستحق شوی وه وهو براءة ذمته عن نصف المهر او هغه د نیم مهر نه د دۀ ذمه بری كیدل وو ولا يبالي باختلاف السبب عند حصول المقصود او د مقصود حاصلیدو په وخت كي د څۀ سبب مختلف كیدو پرواه نۀ شی كولی .

حل اللغة* ① لایبالی:پرواه نشته ② یستحق:مستحق كیږی ]

تشریح:- وجه د استحسان داده.چه كله ښځي خپل خاوند د كل مهر نه بری كړو.نو خاوند ته بعینه هم هغه ور اورسیدلو.د كومی چي دی د ،طلاق قبل الدخول، په وجه مستحق شوی دی.ځكه چي د طلاق قبل الدخول په وجه د خاوند حق وو.د نیم مهر نه په بری الذمه كیدلو كي .او هركله چي د پوره مهر نه بری الذمه شو.نود نیم مهر څخه به په درجه اولی بری الذمه وی .خو كه څوك اووائی .چه د خاوند حق د طلاق قبل الدخول په وجه وو.په نیم مهرنه په بری الذمه كیدلو كي .او دا نیم خاوند ته په بل سبب سره رسیدلی دی.یعنی د ښځي په بری كیدلو سره.نو سبب بدل شو.صاحب دهدایه رحمه الله د [ولا يبالي باختلاف السبب] سره ددی اشكال ځواب وركړی دی.د ځواب حاصل دادی.چه د مقصود حاصلیدلو په وخت كي د سبب د اختلاف پرواه نشی كیدلی.او مقصود یعنی د نصف مهر نه بری كیدل اوموندلی شو.سبب كه هرڅه وی .په عرف عام كي یومتل دی.چه د ،آم خوړلوڅخه مطلب د ښاخونو شمارلو نه څه مطلب،اودا داسی ده.لكه یوكس بل سړی ته اووئیل.چه ،ستا په ماندی زر روپئ دی ،د هغه وینځي ثمن كومه چي ماستا نه اخستی وه، مقرله

بيع كي مقرله تكذيب كړي دي.نو معلومه شوه.چه د مقصود د حصول په وخت د سبب د اختلاف پرواه نشي ساتلي.والله اعلم بالصواب

**وصول شوي پنځه سوه سره نورې پنځه سوه يوځائي كول.او خاوند ته**
**هبه كولونه روسته قبل الدخول طلاق واقع كيدل**

وَلَوْقَبَضَتْ خَمْسَمِائَةٍ او كه ښځې په پنځه سوو باند قبضه او كړه ثُمَّ وَهَبَتْ الْأَلْفَ كُلَّهَا الْمَقْبُوضَ وَغَيْرَهُ أَوْوَهَبَتْ الْبَاقِيَ بيا ئې ټولې زر درهمه هبه كړې مقبوض او غير مقبوض يا ئې پاته پنځه سوه هبه كړې ثُمَّ طَلَّقَهَا قَبْلَ الدُّخُولِ بِهَا بيا ئې طلاقه كړه قبل الدخول نه دَ دې سره لَمْ يَرْجِعْ وَاحِدٌ مِنْهُمَا صَاحِبِهِ بِشَيْءٍ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله (١) نو په دوى كي به يو په بل رجوع نه كوى دَ څه شي دَ امام ابوحنيفه رحمه الله په نزد

**تشريح:-** اوس صورت دادې.چه ښځې په پنځه سوه درهمو باندې قبضه اوكړه.او بيا ئې خاوند ته زر درهم،يعنى مقبوض او غير مقبوض ټولې ئې هبه كړلي.يا ئې صرف غير مقبوض هبه كړل.او،طلاق قبل الدخول، واقع شو.نو د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به په زوجينوكي هيڅ يوكس له په بل باندې درجوع حق نه وى.

وَقَالَا: رَجَعَ عَلَيْهَا بِنِصْفِ مَا قَبَضَتْ اعْتِبَارًا لِلْبَعْضِ بِالْكُلِّ صاحبين رحمهما الله فرمائى چې خاوند به دَ ښځې نه نيم مهر واپس واخلى په كوم چې دهٔ قبضه كړې ده بعض لره قياس په كل باند وَلِأَنَّ هِبَةَ الْبَعْضِ حَطٌّ او ځكه چې دَ بعضې هبه كول كمول دى فَيَلْتَحِقُ بِأَصْلِ الْعَقْدِ نو دا كمې به دَ اصل عقد سره لاحق وى

**تشريح:-** د صاحبينو رحمهما الله مسلك دادې.چه خاوند به په نيم مهر يعنى په دوې [دوه] نيم سوه درهمو رجوع كوى .دليل دادې.چه دوى بعض په كل باندې قياس كوى .دوى فرمائى .كه ښځې په كل باندې قبضه كړې وه.او خاوند ته ئې هبه كړې وې.بيا خاوند دې ته ،طلاق قبل الدخول، وركړې وو.نو زموږ په نيز به خاوند په ښځه باندې د نيم مقبوض رجوع كوله.نو هم دغه شان چې هركله ښځې په بعض باندې قبضه اوكړه.نو ددې بعض په نيم باندې به د رجوع حق حاصل وى . دوهم دليل دادې.چه د بعض هبه يعنى د نيم غيرمقبوض هبه كول،د ښځې د اړخه حط دې.يعنى كمول دى .او حط لاحق كيږى .اصل عقد سره.نو ګويا چې د پيل نه ئې په پنځه سوه مقبوضه درهمو باندې نكاح كړې ده.نودا پنځه سوه درهم به كل مهر وى .اود كل مهر په اړه كي حكم تير شوې دې.چه ښځه په كل مهر باندې قبضه اوكړى .بيا ښځه پوره مهر هبه كړى .نود نصف د رجوع حق پاته وى .نو دغه ډول به دلته كي هم د نصف د رجوع حق حاصل وى .

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله أَنَّ مَقْصُودَ الزَّوْجِ قَدْ حَصَلَ وَهُوَ سَلَامَةُ نِصْفِ الصَّدَاقِ بِلَا عِوَضٍ دَ امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې چه دَ خاوند مقصد حاصل شو او هغه نيم مهر بلاعوضه سالم پاتې كيدل دى فَلَا يَسْتَوْجِبُ الرُّجُوعَ عِنْدَ الطَّلَاقِ نو مستحق دَ رجوع به نه وى په وخت دَ طلاقو كي

**تشريح:-** د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې.چه د خاوند مقصود بغير د عوض نه نصف مهرسلامت پاتې كيدل دى . اودا مقصود دطلاق نه وړاندې حاصل شو.نود طلاق نه روسته به د رجوع مستحق نه وى .

وَالْحَطُّ لَا يَلْتَحِقُ بِأَصْلِ الْعَقْدِ فِي النِّكَاحِ او په نكاح كي كمې دَ اصل عقد سره نهٔ لاحق كيږى أَلَا تَرَى أَنَّ الزِّيَادَةَ فِيهِ لَا تَلْتَحِقُ حَتَّى لَا تَتَنَصَّفُ آيا ته نه ګورې چې په نكاح كي زياتې دَ اصل عقد سره نه لاحق كيږى تر دې چې دَ دې تنصيف نه كيږى .

(١) القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا فى مجمع الأنهر(٣٥٢\١) وفتح القدير(٢٢٦\٣) والبحر الرائق (٢٧٧\٣) والهندية (٣١٦\١) نقلاً عن القول الراجح (٢٧٤\١)-



تَلْتَحِقُ حَتَّى لَا تَتَنَصَّفُ آيا ته نه ګورې چې په نكاح كي زياتې دَ اصل عقد سره نه لاحق كيږى تر دې چې دَ دې تنصيف نه كيږى .

**حل اللغة:** ① الحط:كمول ② تلتحق:مولښتى كيږى ]

**تشريح:-** د صاحبينو د دليل ځواب دادې.چه حط په نكاح كي اصل عقد سره نه لاحق كيږى .وجه داده. چې مثلاً يو سړې د يوې ښځې سره په شلو درهمو باندې نكاح اوكړه.ښځې پنځلس درهمه خاوند ته هبه كړلې.نو اوس به په خاوند لس درهم واجب نه وى .بلكه پنځه درهم به واجب وى .كه حط د اصل عقد سره لاحق كيدلې.نوداسې به شوى وو.چه ګويا خاوند په پنځه درهمو باندې نكاح كړې ده.او په پنځه درهموباندې كه نكاح اوكړې شي .نو لس درهم واجبيږى .نو په دې صورت كي لس درهمه واجبول پكار دى .حالانكه داسې نه ده.بلكه په خاوند به هم پنځه درهمه واجب وى .نو معلومه شوه.چه حط اصل عقد سره نه لاحق كيږى .صاحب دهدايه رحمه الله حط اصل عقد سره دنه لاحق كيدلو يوه وجه دا بيان كړې ده.چه په نكاح كي زياتوالې بالاتفاق اصل عقد سره نه لاحق كيږى .مثلاً خاوند په غير مسمى باندې پنځوس درهمه زياتى كړل.او بيا ئې،طلاق قبل الدخول، وركړو.نو ددې پنځوسو تنصيف به نه كيږى .نولكه څنګه چې زياتوالې اصل عقد سره نه لاحق كيږى . دغه ډول حط به هم د اصل عقد سره نشى لاحق كولې.

**د نصف نه كم مهر خاوند ته هبه كول.**

وَلَوْكَانَتْ وَهَبَتْ أَقَلَّ مِنَ النِّصْفِ وَقَبَضَتْ الْبَاقِيَ و كه ښځې دَ نيمې نه كم مهر هبه كړو او پاته ئې قبضه كړو فَعِنْدَهُ يَرْجِعُ عَلَيْهَا إِلَى تَمَامِ النِّصْفِ (١) نو دَ امام ابوحنيفه رحمه الله په نزد به خاوند په ښځه باند تر تكميل دَ نصف پورې رجوع كوى

**تشريح:-** صورت دادې.چه مثلاً نكاح اوشوه.په زر روپو باندې.او ښځې دوې [دوه] سوه روپۍ خاوند ته هبه كړلې.او په پاته اته سوه روپو باندې ئې قبضه اوكړه.په دې اړه كي د امام صاحب رحمه الله مذهب دادې.چه دومره دې نورې هم واپس واخلى .چه نيم مهر پوره شى .يعنى درې سوه روپۍ دې خاوند د ښځې نه واپس نورې واخلى .

د امام صاحب رحمه الله دليل دادې.چه د،طلاق قبل الدخول، په صورت كي د خاوند لپاره نصف مهرسلامت پاتې كيدل پكار دى .كه سبب هرڅه وى .نو درې سوه روپۍ دې ښځه نورې وصول كړى .چه خاوند ته نيم مهر اورسى .

وَعِنْدَهُمَا بِنِصْفِ الْمَقْبُوضِ او دَ صاحبينو رحمهما الله په نزد به نيم مقبوض واپس اخلى

**تشريح:-** اود صاحبينو رحمهما الله په نيز په نيم دمقبوض يعنى په څلورسوه روپو به رجوع كوى .د صاحبينو رحمهما الله دليل دادې.چه هركله ئې د نصف نه كم هبه كړل.او هبه حط(كمول) دې.نودا حط به اصل عقد سره لاحق كيږى .نو ګويا مقبوض مقدار مهر دې.نو هركله چې ئې طلاق قبل الدخول وركړو.نود ښځې نه د مقبوض مقدار په نصف باندې رجوع كولې شى .

**سامان په مهركې مقرركولونه روسته خاوند ته هبه كول**

وَلَوْكَانَ تَزَوَّجَهَا عَلَى عَرَضٍ او كه نكاح ئې كړې وه دَ ښځې سره په څهٔ سامان باند فَقَبَضَتْهُ أَوْلَمْ تَقْبِضْ نو ښځې قبضه كړو يا ئې قبضه نه كړو فَوَهَبَتْ لَهُ ثُمَّ طَلَّقَهَا قَبْلَ الدُّخُولِ بِهَا و اوئې بخلو خاوند ته بيا خاوند

(١) القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا فى ملتقى الأبحر(٣٥٢\١) وردالمحتار(٣٧٢\٢) والبحر الرائق (٢٧٨\٣) والهندية (٣١٦\١) نقلاً عن القول الراجح (٢٧٥\١)-

مخکې د دخول نه طلاق ورکړل **لَمْ يَرْجِعْ عَلَيْهَا بِشَيْءٍ** نو خاوند به د ښځې نه څۀ واپس نه اخلی

**تشریح:-** صورت د مسئلې دادې.چه د نکاح په وخت ئې داسې شی مهر جوړ کړو.کوم چې په متعین کولو سره متعین کیږی .مثلاً سامان وغیره.که ښځې په دې مهر باندې قبضه کړې وی .او که قبضه ئې نه وی کړې.په حکم کې دواړه برابر دی .بیا ښځې خاوند ته هبه کړلو.او خاوند ښځې ته ،قبل الدخول، طلاق ورکړو.نو په دې صورت کې حکم دادې.چه خاوند به د ښځې نه د نور هیڅ څه رجوع نه کوی .دا حکم استحساناً دې.او هم دا د آئمه ثلاثه مذهب دی.

**وَفِي الْقِيَاسِ وَهُوَ قَوْلُ زُفَرَ** (رحمه الله) **يَرْجِعُ عَلَيْهَا بِنِصْفِ قِيمَتِهِ** او په قیاس کې چې دا د امام زفر (رحمه الله) قول دې چې د سامان نیم قیمت به واپس اخلی .**لِأَنَّ الْوَاجِبَ فِيهِ رَدُّ نِصْفِ عَيْنِ الْمَهْرِ عَلَى مَا مَرَّ تَقْرِيرُهُ** ځکه چې د طلاق قبل الدخول په صورت د عین مهر نیمه واپس کول واجب دی بنا په هغه تقریر چې مخکې تیر شوې دې

**تشریح:-** اود امام زفر (رحمه الله) قول دی.چه ددې په نیم قیمت رجوع اوکړی .هم دا قیاس دې.د امام زفر (رحمه الله) دلیل دادې.چه د ،طلاق قبل الدخول، په صورت کې د عین مهر نصف واپس کول واجب دی .او دلته کې دا موجود نشو.ځکه چې د خاوند لپاره د مهر سلامتی د ښځې په بری کولو سره کیږی .او خاوند د ،طلاق قبل الدخول، په وجه د نصف مهر مستحق وو.نو ښځه به د هغې نه نه بری کیږی .د کومې چې خاوند مستحق شوې دې.یعنی د ،طلاق قبل الدخول، په وجه د نیم مهر،نو هر کله چې ښځه بری نشوه.نو خاوند ته به ددې نصف مهر د رجوع حق حاصل وی .

**وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ أَنَّ حَقَّهُ عِنْدَ الطَّلَاقِ سَلَامَةُ نِصْفِ الْمَقْبُوضِ مِنْ جِهَتِهَا** وجه د استحسان دا ده چې د خاوند حق د طلاقو په وخت کې د نیم مقبوض سالم پاتې کیدل دی د ښځې د جانب نه **وَقَدْ وَصَلَ إِلَيْهِ** او دغه خاوند ته او رسیدل **وَلِهَذَا لَمْ يَكُنْ لَهَا دَفْعُ شَيْءٍ آخَرَ مَكَانَهُ، بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ الْمَهْرُ دَيْنًا** په دې وجه ښځې لره د دې په ځائې د بل شی ورکول جائز نه دی په خلاف د هغې نه هر کله چې مهر دین وه

**تشریح:-** وجه د استحسان داده.چه د ،طلاق قبل الدخول، په وخت د خاوند حق دادې.چه د ښځې د اړخه بلاعوض نصف مقبوض سلامت پاتې شی .او خاوند ته د ښځې د اړخه بغیر د عوض نه عین مهر اورسیدلو.نود زوج مقصود حاصل شو.او هر کله چې مقصود حاصل شو.نو اوس د هیڅ رجوع اړتیا نشته.او چونکه د زوج حق د طلاق په وخت د نصف مقبوض سلامت پاتې کیدل دی .په دې وجه ښځې لپاره جائز نه دی .چه دا د مقبوض سامان بذاته په موجودګۍ کې ددې په ځائې څه بل څه شی خاوند ته ورکړی .ځکه چې مقبوض سامان په دواړو کې متعین دې.

**وَبِخِلَافِ مَا إِذَا بَاعَتْ مِنْ زَوْجِهَا** او په خلاف د هغې نه چې هر کله ښځې په خاوند خرڅ کړو **لِأَنَّهُ وَصَلَ إِلَيْهِ بِبَدَلٍ** ځکه چې په دې صورت کې خاوند ته په بدل سره رسیدلې دې

**تشریح:-** او په خلاف ددې صورت چې مهر د ، مالا يتعين، قبیلې څخه وی .ځکه چې په دې صورت کې خاوند ته د نیم مهر د رجوع کولو حق حاصل دې.ځکه چې د خاوند حق په نصف مقبوض کې ددې متعین کیدلو په وجه نه وو.او هم په دې وجه که ښځې د نصف مهر په ځائې څه بل څه شی ورکړو.نو جائز دې.او ددې په خلاف که ښځې د خاوند په لاس د مهر سامان خرڅ کړو.نو په دې صورت کې به هم خاوند ته د نصف مهر د رجوع حق وی .ځکه چې خاوند اړخ ته نصف مقبوض په عوض کې رسیدلې دې.ځکه چې خاوند د ښځې نه اخستې دې.او سلامت په عوض داسې وی . لکه چې هډو سلامت نه وی .نو دا ،نصف مقبوض بعوض، به ددې قائم مقام نه وی .د کومې چې خاوند د ،طلاق قبل الدخول، په وجه مستحق شوې دې.او هر کله چې دا ،نصف مقبوض بعوض، ددې قائم مقام نه دې.نو بیا به خاوند ته د نیم مهر د رجوع حق حاصل وی .دا مختصر داسې و نیلی شی .چه د خاوند حق په ،نصف مهر بلا بدل، کې وو.او دائې رسولې



دې په بدل سره.نو ګویا چې خاوند ته دده حق د سره رسیدلې هم نه دې.ځکه به ده ته د رجوع حق حاصل وی

والله اعلم بالصواب.

## غیر متعین سامان باندې نکاح کولو نه روسته خاوند ته هبه کول.

**وَلَوْ تَزَوَّجَهَا عَلَى حَيَوَانٍ أَوْ عُرُوضٍ فِي الذِّمَّةِ فَكَذَلِكَ الْجَوَابُ** او که نکاح ئې او کړو د ښځې سره په حیوان یا سامان کوم چې په ذمه کې دې بیا هم ځواب دا دې **لِأَنَّ الْمَقْبُوضَ مُتَعَيِّنٌ فِي الرَّدِّ** ځکه چې مقبوض متعین دې په واپسی کې

**تشریح:-** مسئله داده.چه نکاح ئې اوکړه.او مهر ئې حیوان (څاروې) جوړ کړو.مثلاً فرس یا حمار وغیره ئې مهر جوړ کړو.یا ئې سامان مهر جوړ کړو.چه د خاوند په ذمه به واجب وی .مثلاً وې ونیل.چه مهر (د هرات کپړه) ده.او ددې جنس او نوع ئې هم بیان کړلو.بیا ښځې قبضه اوکړه.یا ئې قبضه اونکړه.خو خاوند لپاره ئې هبه کړو.بیا خاوند ،طلاق قبل الدخول، واقع کړو.نو خاوند ته ښځې باندې د رجوع اختیار نشته.امام شافعی (رحمه الله) فرمائی .چه دا مسمی کول صحیح نه دی .نو په دې صورت کې به مهر مثل واجب وی .اود امام مالك اود امام احمد (رحمه الله) یو یو روایت دادې.چه د جهالت په وجه به نکاح باطل شی .خو زمونږ په نیز به عقد د نکاح درست وی .او اوسط درجه حیوان (څاروې) اوسط درجه کپړه به واجب وی .په اصل مسئله کې مونږ ونیلی وو.چه خاوند ته د ښځې په اړخ د رجوع حق حاصل نه دې.دلیل دادې.چه مقبوض د رد په سلسله کې متعین دې.یعنی که ښځې قبضه اوکړه.نو په ده به بعینه ددې رد متعین وی .او هر کله چې مهر مقبوض په رد کې متعین دې.نود ،ماتعین بالتعین، د جنس څخه به وی .او هر کله چې ښځې ،ماتعین بالتعین، هبه کړلو.نو اوس که دا هبه د قبض نه روسته وی .نو خاوند ته دده عین حق اورسیدلو.ځکه په ماقبل کې تیر شو.چه اختلاف د سبب معتبر نه وی .او که هبه د قبض نه وړاندې وی . بیا هم خاوند ته دده حق اورسیدلو.او هغه د نیم مهر نه بری الذمه کیدل دی .او دا خو معلومه ده.چه د سبب اختلاف معتبر نه دې.

**وَهَذَا لِأَنَّ الْجَهَالَةَ تَحَمَّلَتْ فِي النِّكَاحِ** او دا ځکه چې جهالت متحمل دې په نکاح کې **فَإِذَا عَيَّنَ فِيهِ** نو کله چې ئې معین کړو **يَصِيرُ كَأَنَّ التَّسْمِيَةَ وَقَعَتْ عَلَيْهِ** نو داسې شو چې ګویا تسمیه په دې واقع شوې ده.

**تشریح:-** په دې عبارت سره مصنف (رحمه الله) دوې [دوه] څیزونو اړخ ته اشاره کړې ده.اول داچه د ،حیوان غیر معین، اود ،عروض غیر معین، په عوض نکاح جائز ده. دوهم شی داچه دا مقبوض په رد کې متعین دې.اولنی شی اړخ ته ئې اشاره کړې ده.په [لأن الجهالة] سره.حاصل داچه فرس د غیر مشخص په عوض بیع فاسد ده.یعنی که څوك څه شی خرڅ کړی .د یو نامعلومه اس په بدل کې .نودا بیع به فاسده وی .خو په نکاح کې به دومره جهالت برداشت کولې شی .مثلاً په نکاح کې غیر معین اس مهر جوړ کړې شو.نو نکاح به درست وی .او اوسط درجه والا اس به واجب وی .په بیع او نکاح کې توپیر دادې.چه د نکاح دارومدار په مساهلت او نرمۍ باندې دې.نو لږشان جهالت به برداشت کولې شی .اود بیع دارومدار په تنګۍ باندې دې.نو په بیع کې د مطلق جهالت ګنجائش نه وی . دوهم شی اړخ ته ئې اشاره کړې ده.[فإذا عين] سره.یعنی هر کله چې د قبضه په وخت متعین شو.نو ګویا مسمی به هم په دغه مقبوض باندې واقع وی .د اول فائده د عقد نکاح صحیح کیدل دی .اګرچه مسمی مجهول وی .اود ثانی فائده د خاوند په ښځه باندې رجوع نه کول دی .که ښځې دغه حیوان (څاروې) خاوند ته هبه کړې وی .

## د شرط نه پوره کیدلو په صورت کې د مهر مثل وجوب

**وَإِذَا تَزَوَّجَهَا عَلَى أَلْفٍ عَلَى أَنْ لَا يُخْرِجَهَا مِنَ الْبَلْدَةِ أَوْ عَلَى أَنْ لَا يَتَزَوَّجَ عَلَيْهَا أُخْرَى** هر کله چې نکاح ئې او کړو د ښځې سره په زر درهمه په دې شرط چې دا به د ښار نه بهر نه بیائی یا د دې په موجودګۍ کې به د بلې ښځې سره نکاح نه کوی **فَإِنْ وَفَى بِالشَّرْطِ فَلَهَا الْمُسَمَّى** نو که خاوند شرط پوره کړو نو دې لره به مسمی مهر

وی لِأَنَّهُ صَلَحَ مَهْرًا ځکه چې مسمی دَ مهر جوړېدو صلاحیت لری وقد تم رضاها به او دَ ښځې رضا.په دې مکمله شوې ده

**تشریح:-** صورت د مسئلې دادې.که یوکس د یوې ښځې سره نکاح اوکړه.او زر روپۍ مهر ئې مقرر کړو.په دې شرط چې دا به د ښار نه نه اوباسی .یا داچه ددې په موجودګۍ کې به دویمې ښځې سره نکاح نه کوی .نو دا نکاح صحیح ده.اګرچه دسفر نه کولو،اود دوهم واده نه کولوشرط،شرط فاسد دې.اوشرط فاسد ځکه دې.چه په دې کې د امرمشروع نه منع لازمیږی .نوکه خاوند شرط پوره کړو.نود ښځې لپاره به مسمی یعنی زر روپۍ وی .ځکه چې مسمی یعنی زر روپۍ د مهر جوړېدلو صلاحیت هم لری..اود ښځې په زر روپو بانډې رضامندی هم پوره شوه.ځکه چې په دې شرط کې د ښځې نفع ده.اوکه

وَإِنْ تَزَوَّجَ عَلَيْهَا أُخْرَى أَوْ أَخْرَجَهَا فَلَهَا مَهْرُ مِثْلِهَا او که بل نکاح ئې پراو کړو یا ئې دَ ښار نه او ویستله نو دې لره به مهر مثل وی لِأَنَّهُ سَمَّى مَا لَهَا فِيهِ نَفْعٌ ځکه چې خاوند داسې شې ذکر کړې دې چې دَ ښځې پکې نفع ده فَعِنْدَ فَوَاتِهِ يَنْعَدِمُ رِضَاهَا بِالْأَلْفِ نو دَ دې په فوت کېدو سره په یو هزار د دې رضامندی معدومه شوه فَيُكَمَّلُ مَهْرُ مِثْلِهَا كَمَا فِي تَسْمِيَةِ الْكَرَامَةِ وَالْهَدِيَّةِ مَعَ الْأَلْفِ نو دَ دې مهر مثل به مکمل کولای شی لکه دَ یو هزار سره کرامت او هدیه ذکر کاوه کې

**تشریح:-** خاوند شرط پوره نکړو.نو اوس به دا کتلې شی .چه مهرمثل د مسمی نه کم دې.او که زیات یا برابر دې.که مهرمثل زیات وی .دمهرمسمی یعنی د زر روپو نه.نود ښځې لپاره به مهرمثل وی .دلیل دادې.چه خاوند داسې شی ذکر کړې دې.چه په هغې کې د ښځې فائده ده.اوهم ددې نفع په وجه ښځه مهرمسمی د مهر مثل نه په کموالی راضی شوه.نوګویا د مهر نقصان ددې نفع په مقابله کې دې.نو ددې نفع د فوت کیدلو په صورت کې په زرو بانډې د ښځې رضامندی معدوم شوې ده.نو ددې مهرمثل به مکمل کولې شی .او دا داسې شوه.لکه چې داسې ئې ونیلی وی .چه په زر روپو به زه ستا اکرام هم کوم.یاد زر روپو سره به څه هدیه هم درکوم.نوکه دا د کرامت اوهدیه شرط ئې پوره نکړو.نو مهرمثل به واجب وی .دغه ډول دلته کې هم ده.اوکه مهرمثل د مسمی یعنی د زر روپو نه کم دې.یا برابر دې.نود شرط نه پوره کاوه په صورت کې به هم مسمی یعنی زر روپۍ واجب وی .اودا شرط به د خاوند دا‌ړخه تبرع(احسان) وی .

**په شرط پوره کولو.او په نه پوره کولو کې په مهرکې تفاوت لب**

وَلَوْ تَزَوَّجَهَا عَلَى أَلْفٍ إِنْ أَقَامَ بِهَا او که نکاح ئې اوکړو دَ ښځې سره په یو هزار که دائې په ښار کې او ساتله وَعَلَى أَلْفَيْنِ إِنْ أَخْرَجَهَا او په دوې [دوه] هزار که دَ ښار نه ئې او ویستله فَإِنْ أَقَامَ بِهَا فَلَهَا الْأَلْفُ نو که دائې په ښار که او ساتله نو دې لره هزار دی وَإِنْ أَخْرَجَهَا فَلَهَا مَهْرُ الْمِثْلِ لَا يُزَادُ عَلَى الْأَلْفَيْنِ وَلَا يُنْقَصُ عَنِ الْأَلْفِ او که اوئ ویستله نو دې لره مهر مثل دې کوم چې په دوې [دوه] هزار زیاتولې شی . او د یو هزار څخه به کمولې نه شی وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله (١) او دا په نزد دَ امام ابوحنیفه رحمه الله بانډې

**تشریح:-** صورت د مسئلې دادې.چه یو سړی د یوې ښځې سره نکاح اوکړله.او دوې [دوه] شرطونه ئې ،علی سبیل البدل، ذکرکړل.مثلاً وې ونیل چه،که دابنځه ئې په دې ښارکې مقیم اوساتله.نو مهر به زر روپۍ وی .اوکه ددې ښار نه ئې اوبشکله.نو مهر به دوې [دوه] زره روپۍ وی .په دې مسئله کې د امام ابوحنیفه رحمه الله مذهب دادې.چه رومبې شرط جائز دې.اوشرط ثانی فاسد دې.نوکه مقیم ئې اوساتله.نود ښځې لپاره به زر روپۍ وی .اوکه دائې ددې ښار نه اوبشکله.نو مهرمثل به واجب وی . دلیل دادې.چه د اولنی شرط په وخت

(١) القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في الخانية (١٧٤\١) والدرالمختار(٣٧٥\٢) والهندية (٣٠٨\١) والبحر(٢٨٢\٣) نقلاً القول الراجح (٢٧٧\١)-



شرط ثانی په وجه پیدا شوې دې.او هرکله چې د شرط ثانی په وجه جهالت پیدا شوې دې.نو شرط ثانی به فاسد وی .خو نکاح به فاسد نه وی .ځکه چې د شرط فاسد په وجه نکاح نه فاسدیږی .

وَقَالَا: الشَّرْطَانِ جَمِيعًا جَائِزَانِ حَتَّى كَانَ لَهَا الْأَلْفُ إِنْ أَقَامَ بِهَا وَالْأَلْفَانِ إِنْ أَخْرَجَهَا او صاحبین رحمهما الله وائي چې دواړه شرطونه جائز دی تر دې چې که ښځې دَ پاره به هزاروی که دا ئې په ښار کې او ساتله او دوې [دوه] هزاره به وی که أوئ ویستله

**تشریح:-** د صاحبینو رحمهما الله مذهب دادې.چه دواړه شرطونه جائز دی .یعنی د اقامت په صورت کې به زر روپۍ مهر وی .اود اخراج په صورت کې به دوې [دوه] زره مهر وی ..

وَقَالَ زُفَرُ رحمه الله : الشَّرْطَانِ جَمِيعًا فَاسِدَانِ او امام زفر رحمه الله وائی چه دواړه شرطونه فاسد دی وَيَكُونُ لَهَا مَهْرُ مِثْلِهَا لَا يُنْقَصُ مِنْ أَلْفٍ وَلَا يُزَادُ عَلَى أَلْفَيْنِ او دې لره به وی مهر مثل دَ دې چې کمولې به نه شی دَ هزار نه او زیاتولې به نه شی په دوې [دوه] هزاره

**تشریح:-** د امام زفر رحمه الله مذهب دادې.چه دواړه شرطونه فاسد دی .نوپه دواړه صورتونوکې به مهرمثل واجب وی .چه د زر روپو څخه به کم اود دوې [دوه] زره روپو څخه به زیات نه وی دلیل دادې.چه ،شیٔ واحد،یعنی د بضع په مقابله کې دوې [دوه] مختلف شیان (څیزونه )،علی سبیل البدل، ذکر شوی دی .او هغه دوې [دوه] شیان (څیزونه ) زر،او دوې [دوه] زره روپۍ دی .نود جهالت په وجه تسمیه فاسد شوه.او هرکله چې تسمیه فاسد شوه.نو مهرمثل به واجب وی .

وَأَصْلُ الْمَسْأَلَةِ فِي الْإِجَارَاتِ فِي قَوْلِهِ او دَ مسئلې اصل په اجارو کې دې دَدې قول لاندې که تا دې لره نن او ګنډلو نو ستا دَ پاره به یو درهم وی إِنْ خِطْتَهُ الْيَوْمَ فَلَكَ دِرْهَمٌ، وَإِنْ خِطْتَهُ غَدًا فَلَكَ نِصْفُ دِرْهَمٍ او که صباله د او ګنډلو نو ستا دَ پاره به نیم درهم وی وَسَنُبَيِّنُهَا فِيهِ إِنْ شَاءَ اللَّهُ او موږ به دې لره بیان کړو انشاء الله تعالی .

**تشریح:-** علامه مرغینانی رحمه الله د د لاتلو بیانولو نه بغیر،دا مسئله د کتاب الاجارات په یوه مسئله بانډې محمول کړې ده.مسئله داده.که یوکس درزی ته اوونیل.که تا دا کپړه هم نن اوګنډله.نو مزدوری به یو درهم وی .او که صباله دې تیاره کړه.نو مزدوری به نیم درهم وی .د امام صاحب رحمه الله په نیز شرط اول جائز دې.او شرط ثانی فاسد دې.د صاحبینو رحمهما الله په نیز دواړه شرطونه جائز دی . دلیل دادې.چه په دواړو شرطونوکې دیو شرط اعتبار ضروری دې.د نبی کریم ﷺ ارشاد دې.[المسلمون عند شروطهم] نو هرکله چې دواړه شرطونه مفید،اود دواړو سره عرض تړلې شوې دې.نو دواړه به صحیح وی .

**په دوې [دوه] متفاوت غلامانوکې په یوغیر معین بانډې نکاح کول**

وَلَوْ تَزَوَّجَهَا عَلَى هَذَا الْعَبْدِ أَوْ عَلَى هَذَا الْعَبْدِ که نکاح ئې او کړو په دې غلام یا په دې غلام فَإِذَا أَحَدُهُمَا أَوْكَسُ وَالْآخَرُ أَرْفَعُ نو په دغو کې دَ یو قیمت کم دې او دَ بل زیات دې فَإِنْ كَانَ مَهْرُ مِثْلِهَا أَقَلَّ مِنْ أَوْكَسِهِمَا فَلَهَا الْأَوْكَسُ نو که دَ دې مهر مثل دَ اوکس نه کم وه نو ښځې لره به اوکس وی وَإِنْ كَانَ أَكْثَرَ مِنْ أَرْفَعِهِمَا فَلَهَا الْأَرْفَعُ او که زیات وه دَ ارفع نه نو دې لره به ارفع وی وَإِنْ كَانَ بَيْنَهُمَا فَلَهَا مَهْرُ مِثْلِهَا او که دَ دواړو په مینځ کې وه نو ښځې لره به مهر مثل وی وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله (١) دا دَ امام ابوحنیفه رحمه الله په نزد ده

**حل اللغة:** ① اوکس:کم ② ارفع: زیات ]

(١) القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في ردالمحتار(٣٧٦\٢) والخانية (١٧٤\١) والهندية (٣١٠\١) نقلاً عن القول الراجح (٢٧٨\١)-

**حل اللغة*** ① اوکس: کم ② ارفع: زیات ]

**تشریح:-** مسئله داده چه دوې [دوه] غلامان مخې ته موجود دی .په دوی کې د یو قیمت کم دې اود بل زیات دې مثلاً یو د زر روپو د مالیت دې او دوهم د دوې [دوه] زره روپو د مالیت دې. خاوند بغیر د متعین کاوه نه په دې دواړو کې یو مهر مقرر کړو او وې وئیل چه په مهر کې دا غلام یادا غلام درکوم. نو په دې مسئله کې د امام صاحب رحمه الله مذهب دادې چه مهرمثل ته به کتلې شي .چه دا د اوکس ،یعنی کوم غلام چې په قیمت کې کم دې، نه کم دې یا دا مهرمثل د اوکس برابر دې یا زیات دې یاد اوکس او ارفع (کم او زیات) په مینځ کې دې که مهرمثل داوکس نه کم یا برابر دې نو په دې صورت کې به د ښځې لپاره غلام اوکس وی .اوکه مهرمثل د زیات قیمت والاغلام نه زیات دې نوپه دې صورت کې به د ښځې لپاره زیات قیمت والا غلام وی .اوکه مهرمثل د دواړو په مینځ کې وی .نوښځې ته به مهرمثل ورکولې شي .

**وَقَالَا: لَهَا الْأَوْكَسُ فِي ذٰلِكَ كُلِّهِ** صاحبین رحمهما الله فرمائی چې ښځې له اوکس دې په دې ټولو صورتو نو کې **فَإِنْ طَلَّقَهَا قَبْلَ الدُّخُولِ بِهَا** نو که طلاق ئې ورکړل دې لره د دخول نه مخکې **فَلَهَا نِصْفُ الْأَوْكَسِ فِي ذٰلِكَ كُلِّهِ بِالْإِجْمَاعِ** نو ښځې له به نیم اوکس وی چې ټولو صورتو نو کې په اجماع سره

**تشریح:-** اود صاحبینو رحمهما الله مذهب دادې چه په ټولو صورتونوکې به د ښځې لپاره اوکس غلام وی .که مهرمثل د اوکس نه کم وی .او که د ارفع نه زیات وی .او که ددې دواړو په مینځ کې وی .خو که خاوند ،طلاق قبل الدخول، ورکړو. نو بالاتفاق په ټولو صورتونوکې به نصف اوکس وی .

**لَهُمَا أَنَّ التَّصِيرَ إِلَى مَهْرِ الْمِثْلِ لِتَعَذُّرِ إِيجَابِ الْمُسَمّٰى وَقَدْ أَمْكَنَ إِيجَابُ الْأَوْكَسِ** د صاحبینو رحمهما الله دلیل دا دې چې رجوع مهر مثل ته د وجه د متعذر کیدو د ایجاب د مسمی نه ده او ممکن دی واجبول د اوکس لره **إِذِ الْأَقَلُّ مُتَيَقَّنٌ** خکه چې اقل متیقن دې **فَصَارَ كَالْخُلْعِ وَالْإِعْتَاقِ عَلَى مَالٍ** او دا شوه پشان د خلع او اعتاق په مال باند

**تشریح:-** د دلائلو نه وړاندې په دې پوهه شئ چه په بضع کې موجب اصلی څه دی ؟ صاحبین رحمهما الله فرمائی .چه موجب اصلی مهرمسمی دې ترکومه پورې چې د مهرمسمی واجبول ممکن وی .نود مهرمثل اړخ ته به عدول نشی کیدلې او امام صاحب رحمه الله فرمائی .چه موجب اصلی مهرمثل دې خکه چې مهرمثل د بضع معادل یعنی برابر دې کموالې زیاتوالې نه قبلوی .وجه داده چه مهرمثل د بضع د منافعو قیمت دې اود شي قیمت کموالې زیاتوالې نه قبلوی .په خلاف د مسمی ،چه دا زیاتوالې کموالې قبلوی .نود امام صاحب رحمه الله په نیز به د مهرمثل نه د مهرمسمی اړخ ته عدول هغه وخت کیږي .چه تسمیه صحیح وی .کنی عدول به نه کیږي .

اوس به د صاحبینو رحمهما الله د دلیل حاصل داوی .چه مهرمثل اړخ ته عدول هغه وخت کیدلې شي .چه کله د مهرمسمی واجبول متعذر وی .او دلته کې اوکس غلام واجبول ممکن دی .خکه چې اوکس غلام کم دې په قیمت کې ،او اقل متیقن وی .نوهم دا متیقن به واجب کولې شي .اودا داسې ده لکه چې یوکس خپلې ښځې ته اووائی .چه ما تاسره خلع اوکړه په دې غلام یا په دې غلام باندې یا مولا غلام ته اووائی .چه ماته آزاد کړې په دې غلام، یا په دې غلام باندې نو په دې دواړه مسئلوکې به اوکس متعین وی .نود مهر په مسئله کې به هم اوکس غلام متعین وی .

**وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله أَنَّ الْمُوجِبَ الْأَصْلِيَّ مَهْرُ الْمِثْلِ** او د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دا دې چې موجب اصلی مهر مثل دې **إِذْ هُوَ الْأَعْدَلُ وَالْعُدُولُ عَنْهُ عِنْدَ صِحَّةِ التَّسْمِيَةِ وَقَدْ فَسَدَتْ لِمَكَانِ الْجَهَالَةِ** خکه چې دغه اعدل دې او د دې نه عدول د صحت د تسمیه په وخت باند وی او تسمیه فاسده شوه په وجه د جهالت **بِخِلَافِ الْخُلْعِ وَالْإِعْتَاقِ عَلَى مَالٍ** په



خلاف د خلع او اعتاق نه په مال باندې **لِأَنَّهُ لَا مُوجِبَ لَهُ فِي الْبَدَلِ** خکه چې د دې د پاره په بدل کې څه موجب اصلی نشته

**تشریح:-** د امام صاحب رحمه الله دلیل دادې چه موجب اصلی مهرمثل دې اود مهرمثل څخه به عدول د تسمیه د صحت په وخت کیږي .او دلته کې په دوې [دوه] غلامانوکې تردد اود شك په وجه جهالت پیدا شوې دې اوددې جهالت په وجه به تسمیه فاسد وی .نو مهرمسمی به واجب نه وی .او پاتې شوه خلع او اعتاق نو په دې باندې قیاس درست نه دې خکه چې د بدل په سلسله کې ددې دواړو لپاره هیڅ موجب اصلی نشته نودا به ،قیاس مع الفارق، وی .

**إِلَّا أَنَّ مَهْرَ الْمِثْلِ إِذَا كَانَ أَكْثَرَ مِنَ الْأَرْفَعِ** مګر دا چې مهر مثل هر کله زیات وی د ارفع نه **فَالْمَرْأَةُ رَضِيَتْ بِالْحَطِّ** نو ښځه په کمولو راضی شوې ده **وَإِنْ كَانَ أَنْقَصَ مِنَ الْأَوْكَسِ فَالزَّوْجُ رَضِيَ بِالزِّيَادَةِ** او که د اوکس نه کم وی نو خاوند په زیات راضی شو

**حل اللغة*** ① الخلع: د عوض په بدله کې طلاق حاصلول]

**تشریح:-** په دې عبارت سره د یواعتراض ځواب ورکوی .اعتراض دادې چه هرکله مهرمثل په درې واړه حالتونو کې اصل دې نو مهرمثل واجبول پکار وو .که مهرمثل د اوکس نه کم وی .او که زیات وی .او که ددې دواړو په مینځ کې وی .حالانکه امام صاحب رحمه الله ددې قائل نه دې ځواب* حکم هم دادې خوچه کله مهر مثل د ارفع نه زیات وی .نو ښځه د خپل مهرمثل نه په کمولو باندې راضی شوه اوکه مهرمثل د اوکس نه کم وی .نو خاوند په مهرمثل باندې په زیاتوالی باندې راضی شو نو موږ ددې دواړو په رضامندئ باندې عمل اوکړو .

**وَالْوَاجِبُ بِالطَّلَاقِ قَبْلَ الدُّخُولِ فِي مِثْلِهِ الْمُتْعَةُ وَنِصْفُ الْأَوْكَسِ يَزِيدُ عَلَيْهَا فِي الْعَادَةِ** او په طلاق قبل ازدخول کې واجب د دې پشان په صورت کې متعه ده او نیمه د اوکس عادةً متعې نه زیات وی **فَوَجَبَ لِاعْتِرَافِهِ بِالزِّيَادَةِ** نو نیمه د اوکس به واجبه وی د خاوند د زیاتی د اعتراف په وجه سره .

**تشریح:-** دا عبارت د یواشکال ځواب دې اشکال دادې چه د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز هرکله تسمیه فاسد ده نود ،طلاق قبل الدخول، په صورت کې متعه واجبول پکار وو .نیم اوکس ولې واجب کړې شوې دې؟ځواب* د نصف اوکس وجوب د متعه په لحاظ دې نو هیڅ اشکال نشته. خو اشکال بیا هم پاته دې خکه موږ وایو چه لکه څنګه د ،طلاق قبل الدخول، په صورت کې دتسمیه د فساد په وخت مهرمثل واجبیږی .دغه ډول د طلاق قبل الدخول په صورت کې متعه واجبول پکار دی .خکه چې لکه څنګه په ،طلاق بعد الدخول، کې مهرمثل موجب اصلی دې دغه ډول په ،طلاق قبل الدخول، کې متعه موجب اصلی ده .ځواب* واجب خومتعه پکار وه .خو چونکه په عامه توګه نیم اوکس دمتعه نه د زیات قیمت وی .او خاوند ددې زیاتوالی اقرار هم کوی .په دې وجه متعه واجب کړې شوه .هم دا وجه ده .چه متعه که د نیم اوکس نه د زیات مالیت وی .نو نیم اوکس به واجب نه وی .بلکه د متعه حکم به وی .والله اعلم

## په غیر موصوف څه اروی باندې نکاح کول

**وَإِذَا تَزَوَّجَهَا عَلَى حَيَوَانٍ غَيْرِ مَوْصُوفٍ** که نکاح ئې او کړو د ښځې سره په غیر موصوف څاروی باند **صَحَّتِ التَّسْمِيَةُ** نو دا مقرر کول صحیح دی او ښځې لره به منځنی حیوان (څاروې) وی **وَلَهَا الْوَسَطُ مِنْهُ وَالزَّوْجُ مُخَيَّرٌ إِنْ شَاءَ أَعْطَاهَا ذٰلِكَ وَإِنْ شَاءَ أَعْطَاهَا قِيمَتَهُ** او خاوند ته به اختیار وی چې که غواړی نو ښځې لره دغه ورکړی او که غواړی نو قیمت د هغې دورکړی .

**تشریح:-** مسئله داده که یوسړی د یوې ښځې سره نکاح اوکړه او مهر ئې داسې حیوان (څاروې) مقرر کړو چه

ددې صفت بيان نکړې شو.نو زموږ په نيز به تسميه صحيح وي .اوپه خاوند به واجب وي .چه دې ښځې ته منځنی حيوان (څاروی) ورکړي .او خاوند ته داهم اختيار شته.چه دې د منځنی ډول څاروی قيمت ورکړي .

قَالَ رَحِمَهُ اللهُ: مَعْنَى هٰذِهِ الْمَسْأَلَةِ أَنْ يُسَمِّيَ جِنْسَ الْحَيَوَانِ دُوْنَ الْوَصْفِ فرمائی دَ دې مسئلې معنی دا ده چې دَ حيوان جنس ئې بيان کړو نه چې وصف ، بِأَنْ يَتَزَوَّجَهَا عَلَى فَرَسٍ أَوْحِمَارٍ أَمَّا إِذَا لَمْ يُسَمِّ الْجِنْسَ بِأَنْ يَتَزَوَّجَهَا عَلَى دَابَّةٍ لَا تَجُوْزُ التَّسْمِيَةُ وَيَجِبُ مَهْرُ الْمِثْلِ په دې طور چې دَ ښځې سره ئې نکاح او کړو په اس يا خر باند که جنس ئې بيان نه کړو داسې چې دَ ښځې سره ئې په څاروي نکاح اوکړله. نو تسميه به جائز نه وي او واجب به وي مهر مثل

حل اللغة؛ ① فرس: اس ② حمار: خر]

تشريح:- صاحب دهدايه رحمه الله فرمائی .چه د قدوری ددې مسئلې مراد دادې.چه دڅاروي جنس بيان کړې شو.خو وصف ئې بيان نکړې شو.مثلاً داچه نکاح ئې اوکړه.په اس باندې يا په خر باندې.نو دلته کې د څاروی جنس خو بيان شوې دې.خودا بيان نکړې شو.چه دا اس به ادنی درجه والا وي .اوکه د اعلی يا اوسط درجه والا.خو که د څاروی دسره جنس بيان نکړې شو.مثلاً په مطلق څاروي ئې نکاح اوکړه.نودا تسميه به صحيح نه وي .او مهرمثل به واجب وي .د علامه مرغينانی رحمه الله په عبارت کې د جنس حيوان نه مراد ، نوع د حيوان ده.ځکه چې ،فرس اوحمار ، يعنی د اس او خرکوم مثالونه چې بيان شوی دی .دا نوع ده. جنس نه دې.د صاحب هدايه رحمه الله د اړخه به ځواب داوی .چه صاحب دهدايه رحمه الله د جنس نه مراد هغه جنس مراد اخستې دې.چه د فقهاؤ په اصطلاح کې جنس دې.مثلاً انسان، د غيرفقهاؤ په اصطلاح کې نوع ده. بهرحال د نوع حيوان نه مراد دا دې.چه يوه معنی وي .چه پکې ډير افراد شريك وي .او مقصود اصلی ددې تولو يو وی.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رحمه الله يَجِبُ مَهْرُ الْمِثْلِ فِي الْوَجْهَيْنِ جَمِيْعًا امام شافعی رحمه الله فرمائی چې واجب دې مهر مثل په دواړو صورتو نو کې :لِأَنَّ عِنْدَهُ مَا لَا يَصْلُحُ ثَمَنًا فِي الْبَيْعِ لَا يَصْلُحُ مُسَمًّى فِي النِّكَاحِ ځکه چې دَ ده په نزد کوم شې په بيع کې ثمن کيدآی نه شی دغه مسمی کيداې هم نه شی إِذْ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مُعَاوَضَةٌ ځکه چې په دې کې هر يو عقد معاوضه ده

تشريح:- حضرت امام شافعی رحمه الله فرمائی .چه په دواړه صورتونوکې به مهرمثل واجب وی .که جنس بيان شوې وی .او که نه وی بيان شوې.د امام شافعی رحمه الله دليل دادې.چه کوم شی په عقد بيع کې ثمن نشی جوړيدلې. هغه په مهرکې مسمی هم نشی جوړيدلې.او مجهول يعنی غير موصوف حيوان(څاروې)چونکه په بيع کې ثمن نشی جوړيدلې.نوپه عقد د نکاح کې حيوان غير موصوف مهرمسمی هم نشی جوړيدلې.او عقدنکاح په عقدبيع باندې د قياس کاوه وجه داده.چه دواړه عقد معاوضه دی .

وَلَنَا أَنَّهُ مُعَاوَضَةُ مَالٍ بِغَيْرِ مَالٍ زموږ دليل دا دې چې نکاح معاوضه دَ مال بلا مال ده فَجَعَلْنَاهُ الْتِزَامَ الْمَالِ ابْتِدَاءً نو موږ دې لره ابتداءً التزام مال مقرر کړو تر دې چې په اصل جهالت حَتّٰى لَا يَفْسُدُ بِأَصْلِ الْجَهَالَةِ كَالدِّيَةِ وَالْأَقَارِيْرِ سره به فاسده نه وی لکه ديت او اقرار

تشريح:-د احنافو رحمهم الله دليل دادې.چه نکاح معاوضه د مال په غيرمال ده.نوموږ نکاح په پيل کې التزام دمال اوګرځولو.يعنی خاوند په خپل خان بغير دڅه عوضه مال لازموی .او التزام د مال په اصل جهالت سره هم نه فاسديږی .لکه مثلاً په ديت کې شريعت سل اوښان غير موصوف مقررکړی دی . او يوکس د بل کس لپاره د څه شی اقرار اوکړو.نودا اقرار درست دې.

وَشَرَطْنَا أَنْ يَكُوْنَ الْمُسَمّٰى مَالًا وَسَطُهُ مَعْلُوْمٌ رِعَايَةً لِلْجَانِبَيْنِ او موږ شرط او لګاؤ دا چې مسمی داسې مال وی چه وسط ئې معلوم وی دَ پاره دَ رعايت دَ جانبينو وَذٰلِكَ عِنْدَ إِعْلَامِ الْجِنْسِ او دا دَ جنس معلوميدو په وخت کنبې موندې شی لِأَنَّهُ يَشْتَمِلُ عَلَى الْجَيِّدِ وَالرَّدِيْءِ ځکه چې جنس مشتمل وی په جيد ردی او اوسط باندې



وَالْوَسَطُ ذُوْحَظٍّ مِنْهُمَا ، بِخِلَافِ جَهَالَةِ الْجِنْسِ ، لِأَنَّهُ لَا وَسَطَ لَهُ لِاخْتِلَافِ مَعَانِي الْأَجْنَاسِ او وسط دَ دې دواړو نه برخې والا دې په خلاف دَ جهالت جنس نه چې دې لره څه ذريعه نشته په وجه دَ اختلاف دَ معنو د اجناسو

تشريح:- او موږ داشرط اولګولو.چه مسمی مال معلوم الوسط وی .چه په زوجينوکې د دواړو رعايت اوشی او مسمی معلوم الوسط هغه وخت کيدلې شی .چه جنس يعنی نوع بيان شوې وی .ځکه چې جنس يعنی نوع په اعلی ،ادنی ، او په منځنی باندې مشتمل وی .اود منځنی تعلق دواړو اړخ سره دې.ځکه چې منځنی د اعلی په لحاظ سره ادنی دې.اود ادنی په اړخ نسبت کولوسره اعلی دې.

النديز داشوه.چه نکاح په ابتداء کې التزام د مال دې.او په آخر کې معاوضه ده.د التزام د مال تقاضا داده.چه په اصل جهالت سره هم نکاح فاسد وی .لکه څنګه چې اقرار التزام د مال دې.اصل جهالت هم برداشت کوی .اود معاوضه تقاضا داده.چه نکاح مطلق جهالت برداشت نکړی .نه جهالت فاحشه او نه جهالت يسيره،لکه څنګه چې بيع بالکل د جهالت برداشت نه کوی .نو موږ د دواړه مشابهتونو رعايت اوکړو.چه نکاح به جهالت فاحشه يعنی اصل جهالت خوبه نه برداشت کوی .البته جهالت يسيره اوخفيفه به برداشت کوی .په دې وجه احناف رحمهم الله وائی .چه بيان د جنس ضروری دې.خو بيان د وصف ضروری نه دې.او بيان د جنس په دې وجه هم ضروری دې.که جنس مجهول وی .نود منځنی څاروی معلومات به هم نه کيږی .ځکه د جنس منځنی کيدل د مختلف معانو او جنسونو په وجه، نه کيږی .يوکس دچا نه پوښتنه اوکړو.چه عقل لوې دې.او که ګاميښه (ميخه) غټه ده.هغه ځواب ورکړو.چه د سره سوال غلط دې.ځکه چې وروکې اوغټې د جنس د اتحاد په وخت کيږی .کله چې جنس مختلف وی .نو په دې صورت کې نه کيږی .

وَبِخِلَافِ الْبَيْعِ او په خلاف دَ بيع نه لِأَنَّ مَبْنَاهُ عَلَى الْمُضَايَقَةِ وَالْمُمَاكَسَةِ ځکه چې دَ بيع بنا (بنياد) په تنګئ باندې دې أَمَّا النِّكَاحُ فَمَبْنَاهُ عَلَى الْمُسَامَحَةِ او دنکاح بنا (بنياد) په نرمئ او په مساهلت باندې دې.

حل اللغة؛ ① مبنا بنا (بنياد) ② المضايقة تنګی ③ المماكسة: ايسارول،بندول ④ المسامحة نرمی .آسانی ا

تشريح:- بخلاف البيع...] سره د امام شافعی رحمه الله د دليل ځواب دې.دځواب حاصل دادې.چه نکاح په بيع باندې قياس.کول درست نه دی .ځکه چې د بيع بنا (بنياد) په تنګئ باندې دې.اود نکاح بنا (بنياد) په نرمئ او په مساهلت باندې دې.

وَإِنَّمَا يَتَخَيَّرُ ځکه چې دَ دې مدار په تنګی دې پاتې شو نکاح نو دَ دې بنا (بنياد) په نرمئ دې او خاوند له به اختيار لِأَنَّ الْوَسَطَ لَا يُعْرَفُ إِلَّا بِالْقِيْمَةِ فَصَارَتْ أَصْلًا فِي حَقِّ الْإِيْفَاءِ ځکه وی چې وسط معلوم نه وی مګر په قيمت سره نو قيمت اصل شو دَ ادائيګئی په حق کې .

تشريح:- په دې عبارت سره صاحب دهدايه رحمه الله د اشکال ځواب ورکوی .اشکال دادې.چه منځنی درجه والا اس يا منځنی درجه والا خر مهرمسمی دې.او قاعده ده.چه د مهر مسمی اداکول که ممکن وی .نو بل شی به نشی اداکولې.بيا خاوند ته دا اختيار ولې ورکړې شوې دې.چه دې منځنی ډول حيوان (څاروې) ورکړي .يا دې ددې قيمت ورکړي .ځواب دادې.چه د وسط علم په قيمت سره کيږی .ځکه چې د کوم قيمت ډير زيات وی .هغه اعلی دې.اود کوم قيمت چې ډير کم دې.هغه ردی دې.اود کوم چې نه زيات دې.او نه کم دې.هغه منځنی دې.نود ادا په حق کې به قيمت اصل وی .او عبد اصل دې تسمية،ځکه چې تسميه په دې باندې واقع شوې ده.حاصل داچه په يو اعتبار سره قيمت اصل دې.او په يو اعتبار سره مسمی اصل ده.نو خاوند ته به اختيار وی .چه کوم يو غواړی وردې کړی .

وَالْعَبْدُ أَصْلٌ تَسْمِيَةً او غلام اصل دې دَ تسميه په اعتبا ر فَيَتَخَيَّرُ بَيْنَهُمَا نو خاوند لره به په دې دواړو کې اختيار وی

تشريح:- د هدايه په دې عبارت کې چې [والعبد اصلا تسمية] دې.ددې نسخې په اعتبار سره به داسې وايو.چه په متن کې غير موصوف حيوان مهرمقرر شوې دې،دلته کې يو مثال دهغې عبد ذکر کړې شو.او په بعضو

نسخو کي [والعين] لفظ دی.دا نسخه زیاته واضح ده.ځکه چې دلته به مطلب داوی .چه عين شئ یعنی مهرمسمی اصل دی.والله اعلم بالصواب

## په غیر موصوف کپړه باندې نکاح کول

وَإِنْ تَزَوَّجَهَا عَلَى ثَوْبٍ غَيْرِ مَوْصُوفٍ که دَ ښځي سره ئ نکاح او کړو په غیر موصوف کپړې فَلَهَا مَهْرُ الْمِثْلِ نو ښځي لره به مهر مثل وی وَمَعْنَاهُ: ذَكَرَ الثَّوْبَ وَلَمْ يَزِدْ عَلَيْهِ ولم يزد عليه دَ دې معنی دا ده چې ده کپړه ذکر کړه او په دې ئ زیاتې او نه کړو وَوَجْهُهُ أَنَّ هٰذِهِ جَهَالَةُ الْجِنْسِ او دَ دې وجه دا ده چې د اجهالت دَ جنس دې إِذِ الثِّيَابُ أَجْنَاسٌ ځکه چې دَ کپړې مختلف جنسونه وی

**تشریح:-** مسئله داده.که په نکاح کې کپړې مهر مقرر کړې شی .خود کپړې وصف ذکر نکړې شی .مثلا دا اووائی .چه په مهر کې به کپړه ورکوم.خو ددې نوع بیان نکړی .نو په داسې صورت کې به د آیمه اربعه په نیز مهرمثل واجب وی .وجه ددې داده.چه په دې صورت کې نوع مجهول ده.ځکه چې د کپړې ډیر زیات اقسام دی .مثلاً د مالوچو کپړه، د کتان د ریښمو وغیره.نود مسمی د جهالت په وجه به مهرمثل واجب وی .

وَلَوْ سَمَّى جِنْسًا بِأَنْ قَالَ هَرَوِيٌّ او که جنس ئ بیان کړو په دې طور چې هروی به وی يَصِحُّ التَّسْمِيَةُ وَيُخَيَّرُ الزَّوْجُ لِمَا بيّنّا نو تسمیه به صحیح وی او خاوند به مختار وی لکه چې مونږ بیان اوکړو وَكَذَا إِذَا بَالَغَ فِي وَصْفِ الثَّوْبِ فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ او دَ غسې که دَ کپړې په وصف کې ئ مبالغه اوکړه په ظاهر روایت کې لِأَنَّهَا لَيْسَتْ مِنْ ذَوَاتِ الْأَمْثَالِ ځکه چې کپړې دَ ذوات الامثالونه نه دی

**تشریح:-** او که د کپړې نوع ئې بیان کړله.مثلاً وی وئیل.چه دا به د هروی سوچه تهان کپړه وی .نواوس تسمیه صحیح ده.او خاوند ته به په منځنی درجه هروی کپړې،او ددې به قیمت کې اختیار وی .دلیل په ماقبل کې تیر شوی دی.او که د کپړې په وصف بیانولو کې ئې مبالغه اوکړه.یعنی نوع ئې هم بیان کړه.او ددې اوږد والې، پلن والې، پیړوالې او ډیزائن ئې هم متعین کړه.نو په دې صورت کې به هم خاوند ته په منځنی کپړه او ددې په قیمت کې اختیار وی .ځکه چې کپړه د ذوات الامثال څنې نه ده.بلکه په ذوات القیم کې ده.هم دا وجه ده.چه کپړه که هلاک شي .نو مضمون بالقیمت وی .مضمون بالمثل نه وی .

وَكَذَا إِذَا سَمَّى مَكِيلًا أَوْ مَوْزُونًا وَسَمَّى جِنْسَهُ دُونَ صِفَتِهِ دَ غسې کله چې ئ ذکر کړو مکیلي یا موزونی شې او جنس ئ ورله بیان کړو نه چې صفت وَإِنْ سَمَّى جِنْسَهُ وَصِفَتَهُ لَا يُخَيَّرُ او که دَ دې جنس او صفت ئ بیان کړل نو اختیار به ورنه نشی ورکولې لِأَنَّ الْمَوْصُوفَ مِنْهُمَا يَثْبُتُ فِي الذِّمَّةِ ثُبُوتًا صَحِيحًا ځکه چې موصوف دَ دوی نه ثابت فی الذمه وی دَ صحیح ثبوت په طور.

**تشریح:-** او که مهر ئې څه مکیلی شی جوړ کړو یا ئې موزونی څیز مهر جوړ کړو.او ددې نوع ئې هم بیان کړله مثلاً یو کړود یوی پیمانې نوم دې) غنم، یا یومن زعفران ئې مهر جوړ کړو.خو ددې صفت ئې بیان نکړو نو اوس به هم خاوند ته اوسط درجه مسمی .او ددې د قیمت په مینځ کې اختیار وی .او که نوع او وصف ئې دواړه بیان کړل نو اوس به په خاوند باندې مسمی واجب وی .په قیمت او مسمی کې به اختیار نه وی .ځکه چې په مکیلاتو او موزوناتو کې چې د کوم شي وصف بیان کړې شو.نو هغه په ذمه باندې علی الاطلاق ثابت وی .په بیع سلم کې هم او ددې نه په علاوه کې هم.ددې په خلاف موصوف کپړه ده.چه دا صرف په بیع سلم کې په ذمه باندې خلاف قیاس ثابتیږی .

## په خمر او خنزیر باندې نکاح کول او ددې حکم

وَإِنْ تَزَوَّجَ مُسْلِمٌ عَلَى خَمْرٍ أَوْ خِنْزِيرٍ که نکاح او کړو مسلمان په شرابو یا په خنزیر فَالنِّكَاحُ جَائِزٌ وَلَهَا مَهْرُ مِثْلِهَا نو



نکاح جائز دې او ښځې لره مهر مثل دې لِأَنَّ شَرْطَ قَبُولِ الْخَمْرِ شَرْطٌ فَاسِدٌ ځکه چې قبول دَ شرط دَ خمرو شرط فاسد دې فَيَصِحُّ النِّكَاحُ وَيَلْغُو الشَّرْطُ نو نکاح به صحیح وی او شرط به لغوه وی

**تشریح:-** مسلمان سړی د یوې ښځې سره نکاح اوکړه.او مهر ئې مقرر کړو.شراب یا خنزیر.نود امام ابوحنیفه، امام شافعی اود امام احمد رحمهم الله په نیز به نکاح درست وی .او مهرمثل به واجب وی .اود امام مالک رحمه الله په نیز به نکاح فاسد وی .امام مالک رحمه الله نکاح په بیع باندې قیاس کوی .چه لکه ځنګه په بیع کې شراب او خنزیر د ثمن جوړولو په صورت کې بیع فاسد وی .دغه ډول که په نکاح کې شراب او خنزیر مهر جوړ کړې شو.نو نکاح به فاسد وی .ﷺ د آیمه ثلاثه رحمهم الله دلیل دادې.چه خاوند اووئیل.ما ستاسره په شرابو باندې نکاح اوکړه.نو ګویا خاوند د خمر قبلولو شرط اولګولو.اود شرابو قبلولو شرط، شرط فاسد دې.او په، ما قبل کې تیر شو.چه نکاح په شروط فاسده سره نه باطلیږی .بلکه پخپله شروط فاسده باطل وی .ځکه چې شرط فاسد د تسمیه پریښولو نه زیاته نه ده.او هرکله چې ترک د تسمیه مبطل د نکاح نه دې.نوشرط فاسد به په درجه اولی مبطل د نکاح نه وی .زیات نه زیات دا وئیلی شو.چه د شرابو اوخنزیر تسمیه صحیح نه ده.ځکه چې خمر اوخنزیر د مسلمان په حق کې مال متقوم نه دې.اود تسمیه نه صحیح کیدلو په صورت کې مهرمثل واجب وی .نو په دې صورت کې به هم مهرمثل واجب وی .

بِخِلَافِ الْبَيْعِ په خلاف دَ بیع نه لِأَنَّهُ يَبْطُلُ بِالشُّرُوطِ الْفَاسِدَةِ ځکه چې بیع په شروط فاسدو سره فاسدیږی لَكِنْ لَمْ تَصِحَّ التَّسْمِيَةُ لیکن تسمیه صحیح نهٔ شوه ، لِمَا أَنَّ الْمُسَمَّى لَيْسَ بِمَالٍ فِي حَقِّ الْمُسْلِمِ فَوَجَبَ مَهْرُ الْمِثْلِ.ځکه چې مسمی دَ مسلمان په حق کې مال نه دې په دې وجه مهر مثل به واجب وی .

**تشریح:-** د امام مالک رحمه الله د قیاس ځواب دادې.چه د تسمیه د صحت لپاره دا شرط دې.چه مسمی مال وی .او هرکله چې د مسمی د مال نه کیدلو په وجه تسمیه باطل شوه.نو ګویا عوض ذکر نکړې شو.اود عوض په نه ذکر کاوه سره نکاح نه باطلیږی .هم دا تقریر په بیع کې کوو.چه دشرابو اود خنزیر په مال متقوم نه کیدلو په وجه په بیع کې تسمیه نه ده صحیح شوې.او هرکله چې تسمیه صحیح نشوه.نو ګویا په بیع کې ثمن ذکر نکړې شو.او بیع په عدم تسمیه سره فاسدیږی .او په دې وجه سره بیع فاسدیږی .

ﷺ پاتې شوه داخبره چې بیع په شروط فاسده سره فاسدیږی .او نکاح نه فاسدیږی .نو په دې دواړو کې وجه د توپیر داده.چه شرط فاسد په بیع کې سود دې.او سود په نص دکتاب سره حرام دې.او په نکاح کې د سره سود نشته.نو شرط د رکن په عقد کې نه مؤثر کیږی .نو رکن د عقد به درست وی .او شرط به لغو وی .

## د سرکې متکه په مهرکې مقررول،خودا روسته شراب اوختل

فَإِنْ تَزَوَّجَ امْرَأَةً عَلَى هٰذَا الدَّنِّ مِنَ الْخَلِّ که نکاح ئ او کړو دَ یوې ښځې سره دَ سرکې په یو چاټئ باندې فَإِذَا هُوَ خَمْرٌ او هغه دَ شرابو وه فَلَهَا مَهْرُ مِثْلِهَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله (١) نو ښځې لره به مهر مثل وی په نزد دَ امام ابوحنیفه رحمه الله وَقَالَا: لَهَا مِثْلُ وَزْنِهِ خَلًّا (٢) صاحبين رحمهما الله فرمائی چې دَ ښځې دَ پاره به دَ دې په وزن سرکه وی

حل اللغة: ① الدن: چاټئ: ② الخل: سرکه]

**تشریح:-** صورت د مسئلې دادې.چه په نکاح کې ئې مهر مقرر کړو.یو متکه(چاټئ) سرکه چې دا مشارالیه وه.چه وې کتل نودا دشرابو متکه وه.نو په دې صورت کې به د امام صاحب رحمه الله په نیز مهرمثل واجب وی

(١) القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا فى الخانية (١٧٤\١) والبحر(٢٩٠\٣) والهندية (٣١١\١) نقلاً عن القول الراجح (٢٧٨\١)-

(٢) القول الراجح هو قول الطرفين رحمهما الله كذا فى فتح القدير(٢٤٠\٣) والخانية (١٧٤\١) والهندية (٣١١\١) والبحر(ص.٢٩٠) نقلاً عن القول الراجح (٢٨٠\١)-

.اود صاحبينو رحمهما الله په نيز به ددې په برابر سركه واجب وى .

وَإِنْ تَزَوَّجَهَا عَلَى هٰذَا الْعَبْدِ فَإِذَا هُوَ حُرٌّ او كه نكاح يې او كړو د ښځې سره په دې غلام او هغه آزاد وه يَجِبُ مَهْرُ الْمِثْلِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ نو مهر مثل به واجب وى د طرفينو رحمهما الله په نزد وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ: تَجِبُ الْقِيمَةُ او امام ابوسف وئيلي دى چې قيمت به واجب وى

تشريح:- دوهم صورت دادې چه مهرمقرر كړې شو. مشاراليه عبد ،روسته معلومه شوه.چه دا ازاد دې.نو په دې مسئله كې د طرفينو رحمهما الله مذهب دادې.چه مهرمثل به واجب وى .اود ابويوسف رحمه الله په نيز به دا آزاد،غلام فرض كړې شى .چه ددې كوم قيمت وى .هغه به واجب وى .

حاصل د اختلاف دادې.چه په ذوات الامثال كې امام محمد رحمه الله د امام ابويوسف رحمه الله سره دې.او په ذوات القيم كې د امام ابوحنيفه رحمه الله سره دې.بيا اصول دادى .چه د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز په ټولو صورتونوكې اشاره معتبر ده.اود امام ابويوسف رحمه الله په نيز په ټولوصورتونوكې تسميه معتبر ده.اود امام محمد رحمه الله په نيز په اشاره اوتسميه كې د جنس د اتحاد په صورت كې اشاره معتبر ده.اود جنس د اختلاف په وخت به د تسميه اعتبار كولې شى .

لِأَبِي يُوسُفَ رحمه الله أَنَّهُ أَطْمَعَهَا مَالًا وَعَجَزَ عَنْ تَسْلِيمِهِ د ابويوسف رحمه الله دليل دا دې چې خاوند ښځې ته د مال لالچ وركړې دې او د دغې د تسليم نه عاجز شو فَتَجِبُ قِيمَتُهُ أَوْ مِثْلُهُ إِنْ كَانَ مِنْ ذَوَاتِ الْأَمْثَالِ كَمَا إِذَا هَلَكَ الْعَبْدُ الْمُسَمَّى قَبْلَ التَّسْلِيمِ نو قيمت يا مثل به واجب وى كه دغه د ذوات الامثال نه وى لكه هغه وخت چې عبد مسمى هلاك شى مخكې د تسليم نه

تشريح:- د امام ابويوسف رحمه الله دليل دادې.چه خاوند ښځې ته د يومال لالچ وركړې دې.او بيادې مال د سپارلو نه عاجز راغلو.نو اوس كه دا مال د ذوات الامثال څخې وى .نو ددې مثل به واجب وى ..او كه د ذوات القيم څخې وى .نو ددې قيمت به واجب وى .اودا داسې ده.لكه مثلاً د تسليم نه مخكې عبد هلاك شى .نو ددې قيمت به واجب وى .دغه ډول دلته كې هم ده.

وَأَبُو حَنِيفَةَ رحمه الله يَقُولُ: اجْتَمَعَتِ الْإِشَارَةُ وَالتَّسْمِيَةُ او امام صاحب فرمائى چې دلته اشاره او تسميه جمع شوه فَتُعْتَبَرُ الْإِشَارَةُ نو اشاره به معتبره وى لِكَوْنِهَا أَبْلَغَ فِي الْمَقْصُودِ وَهُوَ التَّعْرِيفُ فَكَأَنَّهُ تَزَوَّجَ عَلَى خَمْرٍ او حر ځكه چې دغه ابلغ ده په مقصود كې يعنى تعريف كې نو دا ګويا په خمرو او په آزاد باند نكاح او كړو

تشريح:-د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې.چه [هذا الدن] او[هذا العبد]كې اشاره اوتسميه جمع شوې ده. اوهركله چې دا دواړه جمع شى .نو اشاره معتبر وى .ځكه چې په مقصود يعنى تعريف كې اشاره ابلغ وى .او اشاره په دې وجه ابلغ ده.چه اشاره په منزله د ،وضع اليد على الشئ، وى .يعنى په يو شى باندې لاس ايخودلو نه روسته كامل امتياز حاصليږى .ځكه چې د يو شى اړخ ته اشاره اوشى .او ددې نه غير مراد واخستلې شى .نودا ممتنع دې.اوچه لفظ يو اووئيلې شى .نو مراد ددې نه،غير ماوضع له، اخستلې شى .ګويا په اشاره كې د غير احتمال نه وى .او په تسميه كې د غير احتمال وى .په دې وجه په تعريف كې اشاره ابلغ ده.په مقابله د تسميه كې .نو هركله چې اشاره معتبر ده.نوګويا نكاح په شرابو، يا په آزاد باندې شويده.او هركله چې په دې دواړوكې يومهر جوړ كړې شى .نو مهرمثل واجبيږى .نو په دې دواړه صورتونوكې به مهرمثل واجب وى .

وَمُحَمَّدٌ رحمه الله يَقُولُ: الْأَصْلُ أَنَّ الْمُسَمَّى إِذَا كَانَ مِنْ جِنْسِ الْمُشَارِ إِلَيْهِ او امام محمد رحمه الله فرمائى چې اصل دا دې چې مسمى كله د جنس د مشاراليه نه وى يَتَعَلَّقُ الْعَقْدُ بِالْمُشَارِ إِلَيْهِ نو عقد به د مشار اليه سره متعلق وى ،لِأَنَّ الْمُسَمَّى مَوْجُودٌ فِي الْمُشَارِ إِلَيْهِ ذَاتًا، وَالْوَصْفُ يَتْبَعُهُ ځكه چې مسمى په مشار اليه كې ذاتاً موجود دې او وصف تابع د ذات وى وَإِنْ كَانَ مِنْ خِلَافِ جِنْسِهِ او كه د خلاف جنس نه وه يَتَعَلَّقُ بِالْمُسَمَّى نو عقد به د مسمى سره متعلق وى لِأَنَّ الْمُسَمَّى مِثْلٌ لِلْمُشَارِ إِلَيْهِ وَلَيْسَ بِتَابِعٍ لَهُ ځكه چې مسمى د مشاراليه مثل دې د دې تابع نه دې وَالتَّسْمِيَةُ أَبْلَغُ فِي التَّعْرِيفِ مِنْ حَيْثُ إِنَّهَا تُعَرِّفُ الْمَاهِيَّةَ او تسميه ابلغ ده په تعريف كې په دې حيثيت چې دغه د ماهيت تعارف كوى وَالْإِشَارَةُ تُعَرِّفُ الذَّاتَ او اشاره تعارف كوى د ذات أَلَا تَرَى أَنَّ مَنِ اشْتَرَى فَصًّا عَلَى أَنَّهُ يَاقُوتٌ فَإِذَا هُوَ زُجَاجٌ آيا ته نه ګورې چې چا غمې (نګينه) (نګينه ) په دې شرط واغستو چې دايا قوت دې بيا هغه هنداره (شيشه) وخته لَا يَنْعَقِدُ الْعَقْدُ لِاخْتِلَافِ الْجِنْسِ نو عقد به تړلې نه وى د وجه د اختلاف د جنس نه

حل اللغة: ① الزجاج: هنداره ② ابلغ: زياته مبالغه ده ]

تشريح:- د امام محمد رحمه الله دليل نه مخكې دوې [دوه] مقدمې په ذهن كې كينوئ.رومبئ مقدمه داده.چه د ماهيت نه مراد ،حقيقت من حيث هى هى ، دې.اود ذات نه مراد هغه دې.چه ،موجود فى الخارج،وى .او هغه اړخ ته اشاره حسيه كيدلې شى .دويمه مقدمه داچه د جنس نه مراد دادې.چه ددې په افرادوكې يو امر فاصل وى .او تفاوت ډيركم وى .لكه غلام او آزاد، مردار او ذبيحه،او په غيرانسان كې مذكر اومؤنث.اود جنسينو نه مراد دادې.چه ددې په افرادوكې د يو امر نه زيات فاصل وى .اود افرادو په مينځ كې تفاوت فاحش وى ،لكه سركه او شراب.ددې دواړو په نوم كې فصل دې.چه د يو نوم سركه دې.او دبل نوم شراب دى .اود صفت په لحاظ سره هم فصل دې.چه په سركه كې تريو والې وى .او په شرابو كې تيزوالې وى .اود معنى په اعتبار سره هم تفاوت وى .چه په شرابوكې نشه وى .او په سركه كې نشه نه وى .په جاريه او غلام كې اسم او صفت دواړه فاصل دى .

اوس د امام محمد رحمه الله د دليل حاصل دادې.چه كوم وخت په عقد كې اشاره اوتسميه دواړه جمع شى .نو كتلې به شى .چه په مسمى او مشاراليه كې اتحاد دجنس دې.اوكه اختلاف د جنس.كه د دواړوجنس يو وى .نو مشاراليه به معتبر وى .اود عقد تعلق به مشاراليه سره وى .ځكه چې دلته كې تسميه په يو دوهم ماهيت باندې دلالت نه كوى .بلكه په صفت باندې دلالت كوى .او صفت په استحقاق كې د موصوف تابع وى .او موصوف په مشاراليه كې موجود وى .نوهركله چې موصوف يعنى مسمى د ذات په اعتبار سره په مشاراليه كې موجود ده.نود عقد تعلق به د مشاراليه سره وى . په دې وجه امام محمد رحمه الله فرمائى .چه د جنس د اتحاد په صورت كې مشاراليه معتبر وى .اود مشاراليه سره د عقد تعلق وى .او كه په مسمى او مشاراليه كې اختلاف په جنس سره وى .نومسمى به معتبر وى .ځكه چې دې وخت كې تسميه دمشاراليه خلاف په دوهم ماهيت باندې دلالت كوى .نومسمى به د مشاراليه مثل وى .او،احد المثلين، دبل تابع نه وى .نو په استحقاق كې به دواړه متعارض وى . اوچونكه د جنس د اختلاف په صورت كې تسميه په تعريف كې ابلغ ده.ځكه چې تسميه د ماهيت شناخت كوى .او اشاره د ذات شناخت كوى .په حقيقت باندې د دلالت كاوه نه بغير.او تعريف د ماهيت اولى وى د تعريف د ذات نه.په دې وجه موږ وايو.چه په تعريف كې تسميه ابلغ وى .او هركله چې تسميه ابلغ ده.نود مسمى اعتبار به كولې شى .اود عقد تعلق به په دې صورت كې مسمى سره وى .د مشاراليه سره به نه وى .

وَلَوِ اشْتَرَى عَلَى أَنَّهُ يَاقُوتٌ أَحْمَرُ فَإِذَا هُوَ أَخْضَرُ او كه په دې شرط يې واغسته چې دا سره يا قوت دې بيا هغه شنه وو يَنْعَقِدُ الْعَقْدُ لِاتِّحَادِ الْجِنْسِ نو عقد به تړلې شى د اتحاد د جنس په وجه وَفِي مَسْأَلَتِنَا الْعَبْدُ مَعَ الْحُرِّ جِنْسٌ وَاحِدٌ او زموږ په مسئله كې غلام د آزاد سره جنس واحد دې لِقِلَّةِ التَّفَاوُتِ فِي الْمَنَافِعِ د وجه د قلت د تفاوت نه په منافعو كې وَالْخَمْرُ مَعَ الْخَلِّ جِنْسَانِ او شراب د سركې سره دوې [دوه] جنسه دى لِفُحْشِ التَّفَاوُتِ فِي الْمَقَاصِدِ.د زيات تفاوت په وجه سره په مقاصدو كې .

حل اللغة: ① احمر: سور ② اخضر: شين ③ التفاوت: توپير ④ المنافع: جمع د منفعة ده فائده ⑤ الفحش: زيات]

تشریح:- صاحب دهدایه رحمه الله د امام محمد رحمه الله په اصول باندې تفریع بیان کړې ده.فرمائی .که یوکس غمی (نګینه) واخستلو.د یاقوتو په شرط باندې.او هغه هنداره اوختله.نودا بیع به باطل وی .ځکه چې مسمی یاقوت دی .او مشارالیه زجاج(شیشه) ده.او په دواړو کي اختلاف د جنس دې.اود جنس د اختلاف په صورت کي عقد مسمی سره متعلق کیږی .اومسمی یعنی یاقوت معدوم دی .نود مبیع معدوم کیدلو په وجه به بیع باطل وی .اوکه د ،یاقوت احمر، په شرط ئې واخستل.او اوختل یاقوت اخضر.نو بیع به منعقد وی .ځکه چې دلته کي مسمی یاقوت احمر،او مشارالیه یاقوت احضر ده.او په دې دواړوکي اتحاد دجنس دې.اود جنس د اتحاد په صورت کي د عقد تعلق مشارالیه سره وی .نو مشارالیه به مبیع وی .او چونکه په دې صورت کي مبیع موجود دې.په دې وجه به عقد د بیع درست وی .البته د وصف فوت کیدلو په وجه به مشتری ته خیارقبول حاصل وی .

اوس د متن مسئلې ته اوګورئ.چه په آزاد اوغلام کي د تفاوت د قلت په وجه د جنس اتحاد دې.اود جنس د اتحاد په صورت کي عقد متعلق کیږی .د مشارالیه سره.او دلته کي مشارالیه آزاد دې.کوم چې د مهرجوړیدلو صلاحیت نه لری .نو په دې صورت کي به مهرمثل واجب وی .او سرکه اوپه شرابود مقاصدو په اعتبار سره فحش تفاوت دې.نوپه دې دواړو کي به دجنس اختلاف وی .اود جنس د اختلاف په صورت کي عقد متعلق کیږی .د مسمی سره.او مسمی سرکه ده.کوم چې د مهرجوړیدلو صلاحیت لری .البته دنه موجودکیدلو په وجه ئې په سپارلو باندې قدرت نشته.او چونکه د سرکه متکه د ذوات الامثال څنې ده.په دې وجه به ددې مثل واجب وی .والله اعلم بالصواب

**دوی [دوه] غلامان په مهرکې اشاره سره مقررول.خو په دې کې یوآزاد اوختلو؟**

**فَإِنْ تَزَوَّجَهَا عَلَى هٰذَيْنِ الْعَبْدَيْنِ** که نکاح ئې او کړو دَ ښځې سره په دې دوو غلامانو **فَإِذَا أَحَدُهُمَا حُرٌّ** نو په دغو کي یو آزاد ښکاره شو **فَلَيْسَ لَهَا إِلَّا الْبَاقِي إِذَا سَاوَى عَشَرَةَ دَرَاهِمَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله** (۱) نو نشته ښځې لره مګر عبد پاته کله چې هغه دَ لسو درهمو برابر وه په نزد دَ امام ابوحنیفه رحمه الله **لِأَنَّهُ مُسَمًّى** ځکه چې دَغه مسمی دې **وَوُجُوبُ الْمُسَمَّى وَإِنْ قَلَّ يَمْنَعُ وُجُوبَ مَهْرِ الْمِثْلِ** او وجوب دَ مسمی اګر چې کم وی دَ وجوب دَ مهر مثل نه مانع دې

تشریح:- صورت د مسئلې دادې.چه دوی [دوه] غلامانو ارخ ته ئې اشاره اوکړه.او مهرئې جوړکړل.اتفاقاً په دې کي یوآزاد وو.او یوغلام وو.نو په دې اړه کي د امام ابوحنیفه رحمه الله مذهب دادې.چه په دې دواړوکي کوم غلام دې.که دده مالیت د لسو درهمو برابر وی .نو صرف دغه غلام به واجب وی .اوکه د لسودرهمو نه د کم مالیت وی .نولس درهمه به پوره ورکولې شی . دلیل دادې.چه تسمیه اواشاره که جمع شی .نواشاره به معتبر وی .او آزاد ارخ ته اشاره دې د عقد نه خارجوی .ځکه چې آزاد د مهرجوړولو صلاحیت نه لری .نوګویا په یوغلام باندې نکاح منعقد شوه.اوهم دغه یو غلام مهرمسمی دې.اود مهرمسمی وجوب د مهرمثل دوجوب لپاره مانع وی .اګرچه مهرمسمی کم ولې نه وی .اودا هم نشی کیدلې.چه غلام پاته شی اومهرمثل دواړه واجب کړی .ځکه چې دا دواړه نشی جمع کیدلې.

**وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ رحمه الله لَهَا الْعَبْدُ وَقِيمَةُ الْحُرِّ عَبْدًا** امام ابویوسف رحمه الله فرمائی چې ښځې لره عبد دې او قیمت دَ حُر دې که دغه غلام وې **لِأَنَّهُ أَطْمَعَهَا سَلَامَةَ الْعَبْدَيْنِ** ځکه چې خاوند ښځې ته لالچ ورکړې دې دَ سلامتی دَ عبد ینو **وَعَجَزَ عَنْ تَسْلِيمِ أَحَدِهِمَا** او عاجز شو دَ تسلیم دَ یو نه **فَتَجِبُ قِيمَتُهُ** نو واجب شو قیمت ئې

تشریح:- د امام ابویوسف رحمه الله مسلك دادې.چه غلام به واجب وی .او آزاد به غلام فرض کولې شی .اودده د

(۱) القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في شرح تنوير(۱۲/۳۸۰) وردالمحتار(۱۲/۳۸۰) والخانية (۱/۱۷۴) والهندية (۱/۳۱۱) البحرالرائق (۳/۲۹۳) نقلاً عن القول الراجح (۱/۲۸۱)-



قیمت اندازه به کولې شی .چه کوم قیمت ئې وی .هغه به هم په خاوند باندې واجب وی . دلیل دادې.چه خاوند دوی [دوه] غلامان ذکر کړل.نو ښځې ته ئې لالچ ورکړو.د پوره دوی [دوه] غلامانو.او په دې دواړو کي دیو د سپارلو نه عاجز راغلو.نو ددې قیمت به واجب وی .

**وَقَالَ مُحَمَّدٌ رحمه الله وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله لَهَا الْعَبْدُ الْبَاقِي وَتَمَامُ مَهْرِ مِثْلِهَا إِنْ كَانَ مَهْرُ مِثْلِهَا أَكْثَرَ مِنْ قِيمَةِ الْعَبْدِ** امام محمد رحمه الله فرمائی او دا یو روایت دې دَ امام ابوحنیفه رحمه الله نه چې دَ ښځې دَ پاره عبد پاته دې دَ تمام مهر مثل پورې که دَ دې مهر مثل دَ غلام دَ قیمت نه زیات وه **لِأَنَّهُمَا لَوْ كَانَا حُرَّيْنِ** ځکه چې که دغه دواړه آزاد وې **يَجِبُ تَمَامُ مَهْرِ الْمِثْلِ عِنْدَهُ** نو دَ امام محمد رحمه الله په نزد به تمام مهر مثل واجب وه **فَإِذَا كَانَ أَحَدُهُمَا عَبْدًا** نو چې یو پکې غلام دې **يَجِبُ الْعَبْدُ وَتَمَامُ مَهْرِ الْمِثْلِ** نو غلام به واجب وی دَ تمام مهر مثل پورې.

تشریح:- د امام محمد رحمه الله په نیزبه غلام واجب وی .د مهرمثل پوره کیدلوپورې.که د مهرمثل قیمت زیات وی .نو مهرمثل به کمولې شی .مثلاً دغلام قیمت زر درهمه دې.اود ښځې مهرمثل دوی [دوه] زره درهمه دې.نو ښځې ته به د غلام سره زیاتی زر درهمه ورکولې شی .چه مهرمثل مکمل شی . د امام محمد رحمه الله دلیل دادې.که دا دواړه آزاد وو.نو مهرمثل به واجب وو.نو هرکله چې یوغلام دې نوغلام به واجب وی .د مهرمکمل کاوه پورې.یعنی که دغلام قیمت دمهرمثل نه کم وی .نودا کمی به پوره کولې شی .د امام محمد رحمه الله د دلیل بنا (بنیاد) په دې دې.چه دې دجنس د اتحاد په صورت کي د اشارې اعتبارکوی .

**په زوجینوکې قبل الدخول د قاضي تفریق کول**

**وَإِذَا فَرَّقَ الْقَاضِي بَيْنَ الزَّوْجَيْنِ فِي النِّكَاحِ الْفَاسِدِ قَبْلَ الدُّخُولِ** هر کله چه تفریق او کړو قاضی دَ زوجینو په مینځ کي په نکاح فاسد کي مخکې دَ دخول نه **فَلَا مَهْرَ لَهَا** نو دَ ښځې دَ پاره مهر نه وی **لِأَنَّ الْمَهْرَ فِيهِ لَا يَجِبُ بِمُجَرَّدِ الْعَقْدِ لِفَسَادِهِ** ځکه چې مهر په نکاح فاسد کي محض په عقد سره نه واجبیږی دَ فساد دَ عقد په وجه **وَإِنَّمَا يَجِبُ بِاسْتِيفَاءِ مَنَافِعِ الْبُضْعِ وَكَذَا بَعْدَ الْخَلْوَةِ** بلکه واجبیږی دَ بضع دَ منافعو په وصول کاوه سره او دَ غسې دَ خلوت نه نو (نه واجبیږی **لِأَنَّ الْخَلْوَةَ فِيهِ لَا يَثْبُتُ بِهَا التَّمَكُّنُ** ځکه چې خلوت په نکاح فاسد کي نه ثابتیږی په دې سره قدرت په وطئی **فَلَا تُقَامُ مَقَامَ الْوَطْئِ** نو قائم مقام به نه وی دَ وطئی

حل اللغة: ① البضع:فرج ② استیفاء: حاصول ③ الخلوة: خانلوالې ]

تشریح:- صورت د مسئلې دادې.چه قاضی د فاسد نکاح په صورت کي د زوجینو په مینځ کي تفریق اوکړو. حالانکه د اوسه پورې خاوند د ښځې سره جماع نه ده کړې.نو په دې صورت کي به مهرنه وی .نه به کل مهر وی .اونه به نصف وی .ددې په خلاف که نکاح صحیح وی .نود ،طلاق قبل الدخول، په صورت کي به نصف مهر واجب وی .نکاح فاسد مثلاً ،نکاح بلا شاهدین، نکاح الاخت فی عدت الاخت فی الطلاق البائن،نکاح الخامسة فی عدة الرابعه او نکاح الامة علی الحرة ، ده.په نکاح فاسد کي د،تفریق قبل الدخول، په وجه د مهر دعدم وجوب دلیل دادې.چه په نکاح فاسد کي د نفس عقد په وجه مهرنه واجبیږی .ځکه چې عقد فاسد دې.البته د بضع منافعو وصولولو سره مهر واجبیږی .او ددې دلیل چې د نفس عقد په وجه مهر نه واجبیږی .د نبی کریم ﷺ ارشاد دې. [أيما إمرأة نكحت بغير إذن وليها فنكاحها باطل فإن دخل بها فلها المهر بما استحل من فرجها] ،کومې ښځې چې د ولی د اجازت نه بغیر نکاح اوکړه.نو ددې نکاح باطل ده.نوکه دې ښځې سره ئې دخول کړې وی .نوددې لپاره به مهر وی .ددې دشرمګاه حلالوپه وجه، په دې حدیث کي رسول الله ﷺ بیان اوفرمائیل.چه په نکاح باطل کي د مهروجوب په دخول سره وی .په عقد اوخلوت سره نه وی .

**فَإِنْ دَخَلَ بِهَا** نو که دخول يې ورسره او کړو **فَلَهَا مَهْرُ مِثْلِهَا لَا يُزَادُ عَلَى الْمُسَمّٰى عِنْدَنَا** نو دَ دې دَ پاره به مهر مثل وي کوم چې به په مسمی نه شی زیاتولي زموږ په نزد

**تشریح:-** دغه ډول که په نکاح فاسد کي دښځې سره خلوت اوشو.بیا به هم د ښځې لپاره مهر نه وی .ځکه چې په نکاح صحیح کي دخلوت نه رَوسته مهر په دې وجه واجب وو.چه خلوت د وطی قائم مقام دې.او په نکاح فاسد کي چونکه شرعی مانع موجود دې.په دې وجه به دا خلوتِ فاسده وی .او خلوتِ فاسده د وطی قائم مقام نه وی .نو په نکاح فاسد کي به دخلوت نه روسته مهر واجب نه وی .خوکه دښځې سره دخول اوشو.نو ددې لپاره به مهرمثل وی .اودا مهرمثل به زموږ په نیز د مسمی نه زیات نه وی .

**خِلَافًا لِزُفَرَ رحمه الله هُوَ يَعْتَبِرُهُ بِالْبَيْعِ الْفَاسِدِ** په خلاف دَ زفر رحمه الله هغه قیاس کوی په بیع فاسدې

**تشریح:-** د امام زفر رحمه الله رائې داده.چه مطلقا به مهرمثل واجب وی .که دمسمی نه کم وی .او که زیات وی .امام زفر رحمه الله نکاح فاسد په بیع فاسد باندې قیناس کوی .چه لکه څنګه په بیع فاسد کي قیمت واجبیږی .که د مسمی نه کم وی .او که زیات وی .دغه ډول به په نکاح فاسد کي هم مهرمثل واجب وی .که د مهرمسمی نه کم وی .او که زیات وی .

**وَلَنَا أَنَّ الْمُسْتَوْفٰى لَيْسَ بِمَالٍ** زموږ دلیل دا دې چې وصول کړې منافع مال نه دې **وَإِنَّمَا يَتَقَوَّمُ بِالتَّسْمِيَةِ** هغه خوبه تسمیه سره متقوم کیږی **فَإِذَا زَادَتْ عَلٰى مَهْرِ الْمِثْلِ** نو که مهر مثل زیات شو **لَمْ تَجِبِ الزِّيَادَةُ لِعَدَمِ صِحَّةِ التَّسْمِيَةِ** نو زیاتې به واجب نه وی دَ عدم صحت دَ تسمیې په وجه **وَإِنْ نَقَصَتْ** او که کم شو **لَمْ تَجِبِ الزِّيَادَةُ عَلَى الْمُسَمّٰى لِانْعِدَامِ التَّسْمِيَةِ**، نو نه دې واجب زیاتې په مسمی باندې دَ عدم تسمیه په وجه سره

**تشریح:-** زموږ دلیل دادې.چه د بضع منافع کوم چې وصول شوی دی .هغه مال نه دې.البته د نکاح په وخت چې کله مهرذکر کړې شو.نود بضع دغه منافع متقوم شو.نو هرکله چې په مهرمثل باندې تسمیه زیاته شوه.نو زیاتوالي به واجب نه وی .ځکه چې د مهرمثل نه د زیاتوالی تسمیه صحیح نه وی . اوکه تسمیه د مهرمثل نه کم وی .نود مسمی څخه به زیاتی واجب نه وی .ځکه چې د مهرمسمی نه د زیاتوالی لپاره تسمیه موجود نه ده.او دویمه خبره داده.چه هرکله مسمی د مهرمثل نه کم ده.نوګویا ښځه پخپل حق کمولو باندې راضی شوه.او په ښځه هیڅ اعتراض نشته

**بِخِلَافِ الْبَيْعِ** په خلاف دَ بیع نه **لِأَنَّهُ مَالٌ مُتَقَوِّمٌ فِي نَفْسِهِ** ځکه چې دَ غه فی نفسه متقوم مال دې **فَيَتَقَدَّرُ بَدَلُهُ بِقِيمَتِهِ** نو دَ دې دَ بدل اندازه به دَ دې په قیمت سره وی **وَعَلَيْهَا الْعِدَّةُ** **إِلْحَاقًا لِلشُّبْهَةِ بِالْحَقِيقَةِ فِي مَوْضِعِ الِاحْتِيَاطِ**.او په ښځې عدت واجب دې شبهې دَ نکاح لره دَ حقیقت د نکاح سره مولښتی کول په ځایْ دَ احتیاط کي **وَتَحَرُّزًا عَنِ اشْتِبَاهِ النَّسَبِ** او دَ بچ کیدو دَ اشتباه دَ نسب نه

**حل اللغة:** ① **الحاقا:** لپاره د ملحق کولومولښتی کولو② **موضع:** ځاني ]

**تشریح:-** ددې په خلاف بیع ده.چه په دې کي ،عوض فی نفسه، مال متقوم دې.نو ددې د بدل اندازه به ددې دقیمت سره لګولې شی . په دې وجه نکاح فاسد په بیع فاسد باندې قیاس کول،قیاس مع الفارق دې.اوپه نکاح فاسدکي به د تفریق نه روسته په ښځه باندې عدت واجب وی .ځکه چې په نکاح فاسدکي ،شبهة النکاح،ده.نو، شبهة النکاح، به د حقیقتِ نکاح سره په احتیاط کي لاحق کیږی .ځکه چې نسب یوداسې امر دې چه ددې په ثابتولوکي احتیاط کولې شی .نو عدت به واجب وی .د نسب د ساتنه دپاره،اود نسب د اختلاط نه دبچکیدلو دپاره.

**وَيُعْتَبَرُ ابْتِدَاؤُهَا مِنْ وَقْتِ التَّفْرِيقِ لَا مِنْ آخِرِ الْوَطَآتِ** **په نکاح فاسدکي د عدت د ابتداء وخت**

**هُوَ الصَّحِيحُ** او معتبره به وی ابتداء دَ عدت دَ وخت دَ تفریق نه ، نه



چې دَ آخری وطئ نه دا صحیح ده **لِأَنَّهَا تَجِبُ بِاعْتِبَارِ شُبْهَةِ النِّكَاحِ** ځکه چې عدت واجبیږی په اعتبار دَ شبهې دَ نکاح سره **وَرَفْعُهَا بِالتَّفْرِيقِ** او دَ شبهه رفع په تفریق سره ده

**تشریح:-** په دې اړه کي اختلاف دې.چه په نکاح فاسد کي به د عدت د پیل اعتبار دکوم وخت نه کیږی ؟ د آیمه اربعه رحمهم الله مذهب دادې.چه دعدت پیل به د تفریق د وخت نه کیږی .د آخری وطی څخه به نه کیږی .د حضرت امام زفر رحمه الله مذهب دې.چه دعدت ابتداء به د آخری وطی نه کیږی . نوکه د وطی نه روسته د تفریق نه مخکې درې حیضه تیرشو.نود امام زفر رحمه الله په نیز ددې ښځې عدت تیر شو.اود آیمه اربعه رحمهم الله په نیز به د تفریق نه روسته عدت پیل کیږی .علامه مرغینانی رحمه الله د امام زفر رحمه الله مذهب قابل اعتناء (ناقابل توجه) ګڼرلې دې.نو ددوی دلیل ئې نه دې بیان کړې.اود آیمه اربعه دلیل دادې.چه د نکاح فاسد په صورت کي عدت په دې وجه واجبیږی .چه د نکاح شبه ده.ځکه چې دعقد ارکان یعنی ایجاب اوقبول موجود شوی دی اود ،شبهة النکاح ، ختمیدل به په تفریق سره کیږی .نود تفریق د وخت څخه به د عدت ابتداء کیږی .

**وَيَثْبُتُ نَسَبُ وَلَدِهَا** او ثابتیږی دَ دې دَ بچې نسب **لِأَنَّ النَّسَبَ يُحْتَاطُ فِي إِثْبَاتِهِ إِحْيَاءً لِلْوَلَدِ** ځکه چې دَ بچې په نسب ثابتولو کي احتیاط کولای شی دَ بچې دَ ژوندی پاتې کاوه دَ پاره .**فَيَتَرَتَّبُ عَلَى الثَّابِتِ مِنْ وَجْهٍ** نو نسب مرتب کیږی په دې نکاح باند هم کوم چې من وجه ثابت دې **وَتُعْتَبَرُ مُدَّةُ النَّسَبِ مِنْ وَقْتِ الدُّخُولِ** او دَ مدې د نسب اعتبار به دَ وخت دَ دخول نه وی دَ امام محمد رحمه الله **عِنْدَ مُحَمَّدٍ رحمه الله** **وَعَلَيْهِ الْفَتْوٰى** په نزد او په دې باند فتوی ده **لِأَنَّ النِّكَاحَ الْفَاسِدَ لَيْسَ بِدَاعٍ إِلَيْهِ** ځکه چې نکاح فاسدداعی الی الوطی نه دې **وَالْإِقَامَةُ بِاعْتِبَارِهِ** او نکاح قائمقام دَ وطی ده په دې اعتبار سره وه.

**تشریح:-** د نکاح فاسد په نتیجه کي که بچې پیداشو.نو دده نسب به ثابت وی .دلیل دادې.چه دنسب په ثابتولوکي احتیاط کولې شی .ځکه که د بچې نسب ثابت نشی .او دده څوك معلوم پلار او پرورش کونکې نه وی .نودا به ضائع شی .او ډیر کرته مرګ واقع کیږی .نو ددې باوجود چې نکاح فاسد ،من وجه،ثابت ده.خود بچې ژوندی ساتلو لپاره به په ده باندې نسبت مرتب کولې شی .اوس پاتې شوه داخبره چې د نسب د مودې اعتبار به د کوم وخت نه کیږی .نو په دې سلسله کي د امام محمد رحمه الله مسلك دادې.چه د نسب د مودې اعتبار به د دخول د وخت نه کیږی .د نکاح د عقد د وخت څخه به نه کیږی .اوهم په دې باندې فتوی ده.

او شیخین رحمهما الله فرمائی .چه د نسب د مودې اعتبار به د نکاح د وخت نه کولې شی .د شیخینو رحمهما الله دلیل دادې.چه دوی نکاح فاسد په نکاح صحیح باندې قیاس کوی .چه لکه څنګه په نکاح صحیح کي د نسب موده د نکاح د وخت نه معتبر وی .دغه ډول به په نکاح فاسد کي هم د نسب د مودې اعتبار د نکاح د وخت نه کولې شی .د دخول د وخت څخه به نه کیږی .د اختلاف ثمره به دا وی .چه د نکاح فاسد نه شپږ میاشتې روسته بچې پیدا شو.خود دخول د وخت نه روسته شپږ میاشتې موده نه پوره کیږی .بلکه څه کمه ده.نود شیخینو رحمهما الله په نیز په نسب ثابت وی .اود امام محمد رحمه الله په نیز به ثابت نه وی .د امام محمد رحمه الله دلیل اود شیخینو رحمهما الله د قیاس ځواب دادې.چه په نکاح صحیح کي د نسب د مودې اعتبار د نکاح د وخت نه ځکه دې.چه دا د ،داعی الی الوطی ، کیدلو په وجه د وطی قائم مقام دې.او چونکه په نکاح فاسدکي وطی حرام اونکاح ،واجب الرفع، وی .په دې وجه به دا اوس،داعی الی الوطی ، هم نه وی .او هرکله چې نکاح،داعی الی الوطی ، نه ده.نود وطی قائم مقام به هم نه وی .نود نسب موده به د دخول د وخت نه معتبره وی .د نکاح د وخت څخه به نه وی .

**په مهر مثل کي د ښځې د خاندان اعتبار کول**

**قَالَ وَمَهْرُ مِثْلِهَا يُعْتَبَرُ بِأَخَوَاتِهَا وَعَمَّاتِهَا وَبَنَاتِ أَعْمَامِهَا** او دَ ښځې دَ مهر مثل اعتبار به ددې دَ خویندو تروړانو او

ترونو دَ لونړو سره وی لِقَوْلِ ابْنِ مَسْعُودٍ رضی الله عنه لَهَا مَهْرُ مِثْلِ نِسَائِهَا لَا وَكْسَ فِيهِ وَلَا شَطَطَ(١) دَ حضرت ابن مسعود ﷺ د دې قول په وجه چې دې لره مهر مثل دَ دې دښځو پشان دې نه دَ دې نه کم نه ددې نه زیات وَهُنَّ أَقَارِبُ الْأَبِ او دغه ښځې دَ پلار خپلوانې دي

حل اللغة* ① اخوات:جمع د اخت،خور ② عمات:جمع د عمة: د پلار خور ③ وکس: کموالې ④ شطط:زیاتوالې]

تشریح:- مسئله داده.چه دښځې په مهرمثل کي ددې د خاندان د ښځو اعتبارکیږی .کومې ښځې چې ددې دپلار اړخ ته منسوب دی .مثلاً خویندې،ترورياني، اود اکا لونړه.ابن ابی لیلی په مهرمثل کي دښځې د مور،او کومې ښځې چې ددې د مور اړخ تـه منسوب دی .د هغـوی اعتبـار کـوی .مثلاً د مورخویندې (ترورياني).د ابن ابی لیلی دلیل دادې.چه مهر د ښځو د بضع قیمت دې.نود ښځې د اړخه چې کوم قرابتونه دی .په مهرمثل کي به هم دهغې اعتبار کولې شی .او زموږ دلیل ①د ابن مسعود (رض) قول دې.[لها مهرمثل نسائها وهن اقارب الأب] یعنی دښځو لپاره ددې د ښځو مهرمثل دې.او هغوی دپلار قرابت دار دی .په دې قول باندې دنساء اضافت د ښځې اړخ ته شوې دې.یعنی ددې ښځې ښځې، لنډیز دا چې ښځې منسوب کړې شوی دی .دې ښځې اړخ ته.او په نسب کي پلار معتبر دې.مور معتبر نه ده.

وَلِأَنَّ الْإِنْسَانَ مِنْ جِنْسِ قَوْمِ أَبِيهِ او ځکه چې بنده دَ خپل پلار دَ قوم دَ جنس نه وی وَقِيمَةُ الشَّيْءِ إِنَّمَا تُعْرَفُ بِالنَّظَرِ فِي قِيمَةِ جِنْسِهِ او دَ شی قیمت دَ دهٔ دَ جنس دُ قیمت په کتو سره پیژندې شی وَلَا يُعْتَبَرُ بِأُمِّهَا وَخَالَتِهَا إِذَا لَمْ تَكُونَا مِنْ قَبِيلَتِهَا لِمَا بَيَّنَّا او دَ مهر مثل اعتبار به نهٔ شی کولې دَدې دَ موردَ خور په مهر سره هر کله چې دَ دې د خاندان نهٔ نهٔ وی په دې وجه چې موږ بیان کړو

تشریح:- ② دوهم دلیل دادې.چه سړې د خپل پلار دقوم جنس وی .اود شیٔ قیمت ددې جنس تـه پـه کتلو باندې معلومیږی .نود بضع قیمت یعنی د مهرمثل په پیژندلوکي به ددې ښځې دپلار قرابت دارو ښځو اعتبارکولې شی .په نسب کي چونکه د پلار اعتبارکیږی .په دې وجه د وینځې زوې خلیفه جوړول درست دی .په دې شرط چې دده پلار قریشی وی .[وهن أقـارب الأب] د ابـن مسعود (رض) قـول نـه دې.بلکه د ابن مسعود(رض) د قول د[نساءها] تفسیر دې.بعض حضراتو[ولأن الإنسان من جنس قـوم ابیـه....إلخ] سره ،واؤ، ساقط کړې دې.او دائې د پلار په اقارب کیدلو باندې دلیل جوړکړې دې.مطلب به داوی .چه ددې دښځو،او هغه ،اقارب الاب، دی .دلیل دادې.چه انسان د خپل پلار د قوم جنس وی .الخ

فَإِنْ كَانَتِ الْأُمُّ مِنْ قَوْمِ أَبِيهَا بِأَنْ كَانَتْ بِنْتَ عَمِّهِ که وه مور دَ قوم دَ پلار دَ دې نه په دې طور چې دَ دهٔ دَ اکا لور وی فَحِينَئِذٍ يُعْتَبَرُ بِمَهْرِهَا نو دغه وخت به معتبر وی دَ دې په مهر سره لِمَا أَنَّهَا مِنْ قَوْمِ أَبِيهَا ځکه چې دغه دَ دې دَ پلار د قوم نه ده

تشریح:- په مهرمثل کي د ښځې د مور او ترور(دمور خور) اعتبار نه کیږی .هرچه دا دواړه ددې د قبیلې خنې نه وی .خو که مور ددې دپلار د قوم د جنس خنې وی .نو په مهرمثل کي به ددې اعتبار کولې شی .مثلاً د ښځې پلار واده کړې وو.د خپل پلار د اکا لورسره.نو په دې صورت کي به ددې ښځې مـور اوترور(د مورخور) ددې دپلار د قوم خنې وی .نو په مهرمثل کي به ددوی هم اعتبارکولې شی

وَيُعْتَبَرُ فِي مَهْرِ الْمِثْلِ أَنْ تَتَسَاوَى الْمَرْأَتَانِ فِي السِّنِّ وَالْجَمَالِ وَالْمَالِ وَالْعَقْلِ وَالدِّينِ وَالْبَلَدِ وَالْعَصْرِ او اعتبار به کولای شی په مهر مثل کي د دې چې دواړه ښځې مساوی وی په عمر کي او په ښاښت کي او په مال او عقل او دین

١) من أثرابن عباس رضی الله عنهما أخرجه أبوداود فی النکاح باب ٣١ رقم ٢١١٤ والترمذی فی النکاح باب ٤٣ رقم ١١٤٥ والنسائی النکاح باب ٦٨ رقم ٣١٤٥ وابن ماجه فی النکاح باب ١٨ رقم ١٨٩١)_



کي او په ښار کي او په زمانه کي لِأَنَّ مَهْرَ الْمِثْلِ يَخْتَلِفُ بِاخْتِلَافِ هَذِهِ الْأَوْصَافِ ځکه چې مهر مثل مختلف کیږی په اختلاف دَ دې او صافو سره وَكَذَا يَخْتَلِفُ بِاخْتِلَافِ الدَّارِ وَالْعَصْرِ او دغه ډول مختلف کیږی په اختلاف دَ ښاراو زمانې سره قَالُوا: وَيُعْتَبَرُ التَّسَاوِي أَيْضًا فِي الْبَكَارَةِ فقهاؤ ویلی دی چې برابر معتبرده دارنګ په بکارت کي لِأَنَّهُ يَخْتَلِفُ بِالْبَكَارَةِ وَالثُّيُوبَةِ ځکه چې مهر په باکره او ثیبه کیدو سره هم مختلف کیږی.

تشریح:- صاحب د قدوری رحمه الله فرمائی .چه په مهرمثل کي به ددې هم اعتبارکیږی .چه کله دوې ادواړ ښځې په عمرکي ، په جمال کي ،په مال کي ، په عقل او دین کي ، په ښار او زمانه کي برابر وی .ځکه چې مهر مثل ددې اوصافو په اختلاف سره مختلف کیږی .دغـه ډول د ښاراود زمانه په اختلاف سره هم مهرمثل مختلف کیږی .بعض فقهاؤبکارت کي هم د مساوات اعتبار کړې دې. ځکه چې دبکارت او ثیوبت په وجه سره هم مهرمثل مختلف کیږی .لکه چې د باکره د بضع قیمت زیات وی .اود ثیبه د بضع قیمت کم وی. حاصل داچه مهرمثل د بضع قیمت دې.اود شیٔ قیمت معلومیږی ددې مثل ته په کتلوسره.نو کومې ښځې چې په مهرمثل کي معتبر دی .دوی په دې ذکرشوی څیزونوکي ددې ښځې برابر کیدل پکاردی .او په متن کي د سن نه د نکاح د وخت سن مراد دې.والله اعلم

## د انجلۍ د پلار یا ولی د مهرضمانت اخستل

وَإِذَا ضَمِنَ الْوَلِيُّ الْمَهْرَ صَحَّ ضَمَانُهُ هر کله چې ضامن شو ولی دَ مهر نو دَ دهٔ ضامن کیدل صحیح دي لِأَنَّهُ مِنْ أَهْلِ الِالْتِزَامِ ځکه چې دَغه دَ التزام اهل دې وَقَدْ أَضَافَهُ إِلَى مَا يَقْبَلُهُ فَيَصِحُّ او دهٔ التزام لره داسې شی اړخ ته منسوب کړې دې چې قابل التزام دې نو ضمان صحیح شو ثُمَّ الْمَرْأَةُ بِالْخِيَارِ فِي مُطَالَبَتِهَا زَوْجَهَا بیا ښځې ته اختیار دې په مطالبه کاوه کي دَ خپل خاوند نه أَوْ وَلِيَّهَا اعْتِبَارًا بِسَائِرِ الْكَفَالَاتِ یا دَ خپل ولی نه قیاس کول په ټولو کفالو باندې وَيَرْجِعُ الْوَلِيُّ إِذَا أَدَّى عَلَى الزَّوْجِ إِنْ كَانَ بِأَمْرِهِ كَمَا هُوَ الرَّسْمُ فِي الْكَفَالَةِ او رجوع به کوی ولی په خاوند کله چې ئې هغه ادا کړی که ضمان دَ خاوند په حکم سره وه لکه چې دا دستور دې په کفاله کي وَكَذَلِكَ يَصِحُّ هَذَا الضَّمَانُ وَإِنْ كَانَتِ الْمُزَوَّجَةُ صَغِيرَةً او دغسې صحیح دې دا ضمان که چرې وه ښځه وړوکي

حل اللغة* ① الرسم:دستور، رواج،قانون]

تشریح:- صورت د مسئلې دادې.چه ولی (پلار)د خپلې بالغې لور نکاح اوکړه.اود لور لپاره ددې د خاوند داړخه ضامن شو.نودا ضامن کیدل شرعاً درست دی .ځکه چې ولی د التزام مال اهل دې.اود کوم شی اړخ ته ئې چې التزام منسوب کړې دې.یعنی مهر،هغه قابل د التزام هم دې.ځکه چې مهر دین دې.او په دین کي کفالـه اوضمان دواړه درست وی .نـود ولـی د بالغـهٔ لپاره د خاونـد داړخه د مهرضـامن کیـدل صحیح دی .نوهرکله چې ضمان درست دې.نو ښځې ته اختیار دې.چه دا د مهرمطالبه د خپل خاوند نه اوکړی .یا د خپل ولی نه.ځکه چې په ټولوکفالوکي هم دغه طریقه ده.چه رب المال د مدیون اووکیل دواړو نه مطالبه کولې شی .اوس که ولی مهرښځې ته اداکړو.نوکتلې به شی .چه داضمان د خاوند په حکم سره وو.اوکه نه وو.که د خاوند په حکم سره وو.نو ولی بـه ددې مال مهر خاونـد تـه رجوع کولې شی .اوکه د حکم نه بغیر وو.نو ولی ته به خاوند اړخ ته د رجوع حق نه وی .بلکه دا مهراداکول به د ولی داړخه تبرع(احسان) وی .د کفالـه هم دغه طریقه ده.اود ضمان د صحت داحکم هغه وخت دې.چه کله ولی د د زوجه صغیره د پاره ضامن وی .

بِخِلَافِ مَا إِذَا بَاعَ الْأَبُ مَالَ الصَّغِيرَةِ وَضَمِنَ الثَّمَنَ په خلاف دَهغې نه کله چې پلار دَ واړهٔ مال خرڅ کړو او دَ ثمن ضامن شو لِأَنَّ الْوَلِيَّ سَفِيرٌ وَمُعَبِّرٌ فِي النِّكَاحِ ځکه چې ولی سفیر او معبر وی په نکاح کي وَفِي الْبَيْعِ عَاقِدٌ وَمُبَاشِرٌ حَتَّى تَرْجِعَ الْعُهْدَةُ عَلَيْهِ او په بیع کي عاقد او مباشر وی تر دې چې ذمه واری به په دهٔ عائد وی وَالْحُقُوقُ إِلَيْهِ او

حقوق به دهٔ اړخ ته راجع وی **وَيَصِحُّ اِبْرَاؤُهُ عِنْدَ اَبِي حَنِيْفَةَ وَمُحَمَّدٍ** (رحمهما الله) او صحیح دی دَ پلار ابراء كول دَ طرفینو (رحمهما الله) نزد **وَيَمْلِكُ قَبْضَهُ بَعْدَ بُلُوْغِهِ فَلَوْ صَحَّ الضَّمَانُ** او مالك به وی پلار په ثمنو دَ قبضې كاوه نه روسته دَ بلوغ دَ صغیر نه روسته كه صحیح شی ضمان **يَصِيْرُ ضَامِنًا لِنَفْسِهِ** نو شی به هغه ضامن دَ ځان دَ پاره وو

**حل اللغة:** ① **سفير:** قاصد، پیغام وركونكې ② **معبر:** د انجلی د ارادې تعبیر كونكې ③ **مباشر:** ګډون كونكې ④ **ابراء:** برى كول]

**تشریح:-** خوكه پلار د خپل صغیر خوی مال خرڅ كړو. او د مشتری د اړخه د ثمن ضامن شو. نو دا ضمان درست نه دې. لنډیز داچه پلار د خپلې صغیرې لور لپاره د خاوند د اړخه د مهر ضامن كیدلې شی. خو پلار د خپل صغیر خوی لپاره د مشتری د اړخه د ثمن ضامن نشی جوړیدلې. وجه د توپیر داده. چه د ولی نكاح سفیر محض، او الفاظ اداكول وی. ددې نه زیات ئې څه حیثیت نه وی. او په بیع كې ولی سفیر محض نشی كیدلې. بلكه عاقد او مباشر وی. هم دا وجه ده. چه په نكاح كې حقوق د نكاح، او ذمه داری د نكاح زوجین اړخ ته واپس كیږی. د ولی اړخ ته نه واپس كیږی. مثلاً ښځې ته د نفقه او سكنی د مطالبې حق د خاوند نه وی. د ولی به نه وی. دغه ډول به خاوند د، قدرت علی الوطی، مطالبه د ښځې نه كوی. د ولی څخه به نه كوی. او په بیع كې حقوق د بیع عاقد اړخ ته واپس كیږی. اصیل اړخ ته نه واپس كیږی. مثلاً مشتری به په مبیع باندې د قبضې مطالبه د عاقد (ولی) نه كوی. د اصیل (صغیر) څخه به نه كوی. او دغه ډول د ثمن وصولولو حق به عاقد ته وی. اصیل (صغیر) ته به نه وی.

او هم دا وجه ده. كه ولی مشتری د ثمن نه بری كړی. نو د طرفینو (رحمهما الله) په نیز به مشتری بری وی. او د كوم كس لپاره چې ولی وو. هغه ته به ضمان وركوی. او هم په دې وجه د صغیر د بالغ كیدلو نه روسته به هم ولی په ثمن باندې قبضه كوی. نو هركله چې په نكاح كې د ولی حیثیت د سفیر او معبر دی. نو اوس كه دې د خپلې بالغې یا صغیرې لور لپاره د مهر ضامن جوړشی. نو دا به، ضمان لنفسه، نه وی. بلكه، ضمان لغیره، به وی او ضمان لغیره جائز دې. نو د پلار خپلې لور لپاره ضامن كیدل هم درست دی. او چونكه په عقد د بیع كې د ولی حیثیت د سفیر محض نه وی. بلكه د عاقد وی. نو اوس كه ولی یعنی پلار د خپل صغیر خوی لپاره د مشتری د اړخه د ثمن ضامن شو. نو دا به، ضمان لنفسه، وی. او دا ناجائز دې. په دې وجه په بیع كې پلار د خپل خوی لپاره د مشتری د اړخه د ثمن ضامن نشی جوړیدلې.

**وَوِلَايَةُ قَبْضِ الْمَهْرِ لِلْاَبِ بِحُكْمِ الْاُبُوَّةِ لَا بِاعْتِبَارِ اَنَّهُ عَاقِدٌ** او دَ قبض دَ مهر ولایت پلار لره دې په حكم دَ ابوت نه چې په دې اعتبار چې دې عاقد دې **اَلَا تَرٰى اَنَّهُ لَا يَمْلِكُ الْقَبْضَ بَعْدَ بُلُوْغِهَا** آیا ته نه ګورې چې پلار نه مالك كیږی دَ قبضې روسته دَ بلوغ دَ صغیرې نه **فَلَا يَصِيْرُ ضَامِنًا لِنَفْسِهِ** نو پلار به ضامن دَ خپل ځان نه وی.

**تشریح:-** دا عبارت د یو اشكال خواب دې. اشكال دادې. چه پلار د خپلې صغیرې لور د اړخه په مهر باندې د قبضه مالك دې. لكه څنګه چې وكیل په ثمن باندې د قبضه مالك وی. نو كه د پلار ضامن كیدل صحیح شی. نو دا به ضمان لنفسه وی. او دا ناجائز دې.

خواب: پلار په مهر باندې د قبضه ولایت ددې د عاقد كیدلو په وجه نه دې. بلكه د پلار كیدلو په وجه دی. هم دا وجه ده. چه د انجلی د بالغ كیدلو نه روسته پلار په مهر باندې د قبضه مالك نه وی. نو كه پلار د خپل خوی لپاره د مهر ضامن شو. نو دا به ضمان لنفسه وی. په دې وجه دا جائز ګرځولې شویدی.

**د مهر معجل یا موجل په مختلفو صورتونو كې ښځې له د منع اختیارات**

**قَالَ وَلِلْمَرْأَةِ اَنْ تَمْنَعَ نَفْسَهَا حَتّٰى تَأْخُذَ الْمَهْرَ** او ښځې لره اختیار دې دَ ځان منع كاوه تر دې چې مهر وصول كړی **وَتَمْنَعَهُ اَنْ يُخْرِجَهَا** او دا چې ښځه منع كړی خاوند چې دې لره اوباسی **اَيْ يُسَافِرَ بِهَا** یعنی چې دَ دې سره سفر او كړی **لِيَتَعَيَّنَ حَقُّهَا فِي الْبَدَلِ كَمَا تَعَيَّنَ حَقُّ الزَّوْجِ فِي الْمُبْدَلِ فَصَارَ كَالْبَيْعِ** چې متعین شی حق ددې په بدل



**تشریح:-** كه واړه مهر معجل وی. نو خاوند به د ښځې سره یا دخول كړې وی. یا به ئې نه وی كړې. كه پوره مهر معجل وی. او خاوند د ښځې سره دخول هم نه وی كړې. نو په دې صورت كې ښځې ته اختیار دې چه دې خپل خاوند ته په وطی باندې قدرت ورنكړی. ترڅو ئې چې پوره مهر معجل نه وی وصول كړې. او دغه ډول ښځه خپل خاوند سره د سفر كاوه نه منع كولې شی. دلیل دادې چه نكاح عقد مبادله ده. او دا د، تساوی من الجانبین، تقاضا كوی. او په مبدل یعنی په بضع كې د خاوند حق متعین دې. نو ښځې ته به په مهر باندې قبضه وركولې شی. چه د ښځې حق بدل یعنی په مهر كې تعین اوشی. او په تعین كې د بدلینو په مینځ كې مساوات راشی. او دا د بیع په شان دې. یعنی لكه څنګه چې بائع د ثمن د طلب په وجه مبیع منع كولې شی. دغه ډول ښځه د مهر طلب كاوه په وجه بضع منع كولې شی.

**وَلَيْسَ لِلزَّوْجِ اَنْ يَمْنَعَهَا مِنَ السَّفَرِ** دَ خاوند حق نشته چې منع كړی ښځې لره دَ سفر نه **وَالْخُرُوْجِ مِنْ مَنْزِلِهَا** او دَ وتلو دَ خپل كور نه **وَزِيَارَةِ اَهْلِهَا حَتّٰى يُوْفِيَهَا الْمَهْرَ كُلَّهُ** **اَيِ الْمُعَجَّلَ مِنْهُ** او دَ خپل اهل خانه دَ زیارت كاوه نه تر دې چه وركړی دې ته مهر پوره واړه یعنی معجل **لِاَنَّ حَقَّ الْحَبْسِ لِاسْتِيْفَاءِ الْمُسْتَحَقِّ** ځكه چې دَ منع كاوه حق دَ وصولی دَ مستحق دَ پاره دې **وَلَيْسَ لَهُ حَقُّ الْاِسْتِيْفَاءِ قَبْلَ الْاِيْفَاءِ** او خاوند لره دَ وصول كاوه حق نشته دَ ادائیګی نه مخكې

**حل اللغة:** ① **الاستيفاء:** حاصلول ② **الايفاء:** وركول ]

**تشریح:-** او په دې صورت كې د خاوند لپاره جائز نه دی. چه دې خپله ښځه د سفر كاوه نه منع كړی. او د خپل كوره د وتلو نه، او د ښځې د كور والو د زیارت كولو نه منع كړی. تردې پورې چې خاوند دې ته پوره مهر معجل اداكړی. دلیل دا دې. چه خاوند ته د بندولو حق ځكه حاصل وو. چه دې خپل حق یعنی د بضع منافع وصول كړی. او خاوند د مهر اداكولو نه وړاندې د خپل حق وصولولو حق نه لری. نو د خاوند لپاره به دا اختیار هم نه وی. چه خپله ښځه د سفر وغیر نه بنده كړی

**وَلَوْ كَانَ الْمَهْرُ كُلُّهُ مُؤَجَّلًا** او كه پوره مهر موجل وه واړه **لَيْسَ لَهَا اَنْ تَمْنَعَ نَفْسَهَا لِاِسْقَاطِهَا حَقَّهَا بِالتَّاْجِيْلِ كَمَا فِي الْبَيْعِ** نو ښځې لره خپل ځان منع كول جائز نه دی په ذریعه دَ تاجیل دَ خپل حق ساقطولو په وجه لكه چې په بیع كې دي **فِيْهِ خِلَافُ اَبِي يُوْسُفَ** (رحمه الله) او په دې كې خلاف دَ ابویوسف (رحمه الله) دې

**تشریح:-** دوهم صورت چې مهر واړه په ټوله موجل وی. ددې هم دوې [دوه] صورتونه دی. ځكه چې خاوند به د ښځې سره دخول كړې وی. یا به ئې نه وی كړې. كه دخول ئې نه وی كړې. نو ښځې ته به حق د منع كاوه حاصل وی. او كه نه. په دې اړه كې اختلاف دې. د طرفینو (رحمهما الله) په نیز به ښځې ته د منع كولو حق حاصل نه وی. یعنی ښځې ته دا اختیار نشته. چه دا خاوند ته په وطی باندې قدرت ورنكړی.

او د امام ابویوسف (رحمه الله) په نیز ښځې ته د منع كاوه حق حاصل دې. یعنی ښځې ته دا اختیار شته. چه دا خاوند د وطی نه منع كړی. او ده ته، قدرت علی الوطی، ورنكړی. د امام ابویوسف (رحمه الله) دلیل دادې. چه د اطلاق په وخت موجب د نكاح تسلیم (قبلول) دې. كه مهر عین وی او كه دین وی. نو هركله چې خاوند د نكاح په موجب د پوهیدلو باوجود اجل قبول كړو. یعنی دا ئې اومنل. چه مهر به روسته ادا كولې شی. نو ګویا خاوند په دې خبره راضی شو. چه دده حق ادائیګی د مهر پورې موخر كولې شی. او هركله چې خاوند د خپل حق په موخر كاوه باندې راضی شو. نو ښځې ته به هم ترهغه وخته پورې حق د منع كولو حاصل وی. چه تر كومه پورې خاوند مهر ادا نكړی. د طرفینو (رحمهما الله) دلیل دادې. چه ښځې په مهر موجل كاوه په وجه خپل د طلب كولو حق ساقط كړې دې. او هركله چې ښځې پخپله د طلب خپل حق ساقط كړو. نو اوس به دې ته د خاوند د مستحق حق، یعنی د بضع منع كولو حق نه وی. لكه څنګه چې په بیع كې وی. یعنی كه بائع ثمن موجل كړی. نو بائع ته د مبیع منع كاوه حق نه وی. دغه ډول كه مهر موجل وی. نو ښځې ته به د منع كولو حق حاصل نه وی.

وَإِنْ دَخَلَ بِهَا فَكَذٰلِكَ الْجَوَابُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله (۱) او كه دَ ښځې سره يې دخول اوكړو نو هم دا حكم دې په نزد د امام ابوحنيفه رحمه الله وَقَالَا: لَيْسَ لَهَا أَنْ تَمْنَعَ نَفْسَهَا او صاحبين رحمهما الله فرمائي نشته ښځې لره ځان منع كول وَالْخِلَافُ فِيمَا إِذَا كَانَ الدُّخُولُ بِرِضَاهَا حَتّٰى لَوْ كَانَتْ مُكْرَهَةً أَوْ كَانَتْ صَبِيَّةً أَوْ مَجْنُونَةً او اختلاف په هغې صورت كې دې چه هر كله دخول دَ دې په رضا وى تر دې چه كه په دې زور او كړې شو يا داوړه وه يا مجنونه وه لَا يَسْقُطُ حَقُّهَا فِي الْحَبْسِ بِالِاتِّفَاقِ نو نه ساقطيږى حق دَ دې په منع كاوه كې په اتفاق سره

حل اللغة* ① مكرهة: چې زور پرې شوې وى ② صبية ماشومه ③ مجنونة: ليونۍ ④ الحبس: بنديز]

تشريح:- صاحب د كتاب رحمه الله دريم صورت بيان كړې دې. كه ښځې سره دخول اوشو. او مهرمعجل دې. نود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز هم دغه حكم دې. يعنې ښځې ته دمنع كولوحق حاصل دې. او صاحبين رحمهما الله فرمائي. چه د دخول نه روسته ښځې ته د منع كولوحق حاصل نه دې. دا خبره ياد ساتئ. چه د امام صاحب اود صاحبينو رحمهما الله اختلاف په دې صورت كې دې. چه دخول د ښځې په رضامندئ سره شوې وى. كه د ښځې سره په زوره شوې وى. يا دا ماشومه وى. يا ديوانه وى. نوبه اتفاق سره ددې د منع كولوحق نه ساقطيږى.

وَعَلٰى هٰذَا الْخِلَافِ الْخَلْوَةُ بِهَا بِرِضَاهَا او په دې اختلاف بنا دى دَ ښځې سره خلوت كول دَ دې په رضا وَيَبْتَنِي عَلٰى هٰذَا اسْتِحْقَاقُ النَّفَقَةِ او په دې اختلاف مبنى دې استحقاق دَ نفقې

تشريح:- هم دا اختلاف هغه وخت دې. چه كله ښځې سره ددې په رضامندئ سره خلوت موجود شى. هم په دې اختلاف باندې استحقاق د نفقه مبنى ده. د امام صاحب رحمه الله په نيزد منع په موده كې ښځه د نفقې مستحق وى. ځكه چې دا منع كول په حق دى. اود ، منع بحق، په وجه سره دې ښځې ته ناشزه او نافرمانه نشي وئيلې كيدلې. اود صاحبينو رحمهما الله په نيز به د نفقې مستحقه نه وى. ځكه چې ددوى په نيز دا ښځه ناشزه ده. اود ناشزه د پاره نفقه وغيره واجب نه وى. بهرحال د دخول يا خلوت نه روسته د صاحبينو رحمهما الله په نيزد ښځې لپاره د منع كولوحق نشته. اود امام صاحب رحمه الله په نيزد ښځې لپاره د منع حق حاصل دې.

لَهُمَا أَنَّ الْمَعْقُودَ عَلَيْهِ كُلَّهُ قَدْ صَارَ مُسَلَّمًا إِلَيْهِ بِالْوَطْأَةِ الْوَاحِدَةِ وَبِالْخَلْوَةِ دَ صاحبينو رحمهما الله دليل دا دې چه پوره معقود عليه خاوند ته حواله كړې شو په يوې وطى يا خلوت سره وَلِهٰذَا يَتَأَكَّدُ بِهَا جَمِيعُ الْمَهْرِ په دې وجه دَ دې په بنا پوره مهر مؤكد كيږى فَلَمْ يَبْقَ لَهَا حَقُّ الْحَبْسِ كَالْبَائِعِ إِذَا سَلَّمَ الْمَبِيعَ نو دې لپاره د منعه كولو حق نيشته لكه بائع چې كله مبيعه وسپارى.

تشريح:- د صاحبينو رحمهما الله دليل دادې. چه كله خاوند د ښځې سره يوځل وطى يا خلوت صحيحه اوكړه. نود ښځې د اړخه خاوند ته پوره معقودعليه اوسپارلې شو. هم دا وجه ده. چه په يووطى يا خلوت سره پوره مهر واجبيږى. كه د دويمې وطى په مقابله كې هم مهرمقرر وې. نو په يوځل وطى به واړه مهر نه واجب كيدلې. نو هركله چې ښځې معقودعليه اوسپارلو. نو اوس ددې لپاره د خپل ځان د منع كولوحق نشته. اودا بالكل داسې ده. لكه چې بائع په ثمن باندې د قبضې نه وړاندې مشترې اړخ ته مبيع اوسپارلو. نو بائع ته به د ثمن په وجه د مبيع منع كولوحق حاصل نه وى.

وَلَهُ أَنَّهَا مَنَعَتْ مِنْهُ مَا قَابَلَ الْبَدَلَ، په دې وجه دَ ښځې دَ خاوند نه هغه شې منع كړې دې كوم چې مقابل دَ بدل دې لِأَنَّ كُلَّ وَطْأَةٍ تَصَرُّفٌ فِي الْبُضْعِ الْمُحْتَرَمِ ځكه چې هره وطى په بضع محترمه كې تصرف دې فَلَا يُخْلَى عَنِ الْعِوَضِ إِبَانَةً لِخَطَرِهِ نو دې لره به دَ عوض نه خالى نه شى پرېښودلې (پريخودې)، دَ دې دعظمت ظاهر ولو دَ پاره

حل اللغة* ① البضع: شرمگاه ② ابانة: ښكاره كول ③ خطر: عظمت]

(۱) القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في فتح القدير(۲۴۹\۳) وردالمحتار(۳۸۹\۲) ومجمع الأنهر(۳۵۹\۱) والبحرالرائق (۳۱۰\۳) نقلاً عن القول الراجح (۲۸۲\۱)-



تشريح:- د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل به د مناقضه په طور دا وى. چه مونږ داخبره نه منو چه په يوه وطى پوره معقودعليه يعنې بضع خاوند ته حواله شوه. ځكه چې ښځې د خاوند نه داسې شى منع كړې دې. چه د هغې په مقابله كې بدل شته دې. ځكه چې هره وطى په بضع محترم كې تصرف كول دى. او ، تصرف فى البضع خالى عن العوض، نه وى. اود هغه شى منع كول. د كوم په مقابله كې چې بدل وى. صحيح نه دى. نوښځې ته به د يو وطى نه روسته هم دمنع كولوحق حاصل وى.

وَالتَّأْكِيدُ بِالْوَاحِدَةِ لِجَهَالَةِ مَا وَرَاءَهَا او په يوه وطى سره مؤكد كيدل دَ دې دَ ماوراء مجهول كيدو په وجه سره دې فَلَا يَصْلُحُ مُزَاحِمًا لِلْمَعْلُومِ نو دغه مجهول مزاحم دَ معلوم نه شى كيداې ثُمَّ إِذَا وُجِدَ آخَرُ وَصَارَ مَعْلُومًا بيا چې كله بله وطى او مونډې شوه او معلومه شوه تَحَقَّقَتِ الْمُزَاحَمَةُ نو مزاحمت به متحقق شى وَصَارَ الْمَهْرُ مُقَابَلًا بِالْكُلِّ او مهر به دَ ټولو د طئو مقابل شى

حل اللغة* ① مزاحم: مقابله كونكې ② تحققت: موجود شو]

تشريح:- دا عبارت د صاحبينو رحمهما الله د دليل ځواب حاصل دادې چه په يوځل وطى سره كل مهر ځكه ثابت شوې وو. چه ددې وطى نه علاوه نور واړه وطيات مجهول دى. او مجهول د معلوم مقابل نشى كيدلې. په دې وجه واړه مهر په يوه وطى سره مؤكد كيږى. نو كه د يو وطى نه روسته دويمه او دريمه وطى هم موجود شوه. نودا دويمه اودريمه وطى به هم معلومه وى. او يوه معلومه وطى د بلې معلومې وطى مزاحم(مقابل) جوړيدلې شى. نو په دې صورت كې به مهرصرف د يو وطى مقابل نه وى. بلكه څومره قدرې وطيات چې موجود شوى دى. د هغه ټولو مقابل به وى.

كَالْعَبْدِ إِذَا جَنَى جِنَايَةً يُدْفَعُ كُلُّهُ بِهَا لكه يو غلام چې جنايت او كړى نو دَ دې په وجه به پوره غلام ور كولاى شى ثُمَّ إِذَا جَنَى جِنَايَةً أُخْرٰى او كله چې دوهم يا دريم جنايت او كړى يُدْفَعُ بِجَمِيعِهَا نو دَ دغه ټولو په بدله كې به ور كولاى شى

حل اللغة* ① جناية: جرم ② بلد: ښار ③ الغربة: مسافرى ، پردې وطن ④ المصر ښار]

تشريح:- ددې مثال داسې دې. چه يوغلام جنايت اوكړو. نو په مولا باندې واجب دى. چه دې بدل جنايت اداكړى. يا غلام اوسپارى. نو كه پوره غلام په بدل جنايت كې وركړې شو. بيا غلام دوهم او دريم جنايت اوكړو. نود ټولوجنايتونو بدل به هم دا يوغلام وى. ددې نه زيات به په مالك هيڅ څه واجب نه وى.

(۱) اوكه څه مهرمعجل وى. او څه مؤجل وى. نود مهرمعجل ادا كاوه نه مخكې به ښځې ته د منع حق حاصل وى. او كه مهرمعجل ئې ښځې ته اوسپارلو. نو ښځې ته به د منع كولوحق حاصل نه وى. خوكه تاسو اشكال اوكړئ. چه تعجيل مهر او تاجيل مهر، دواړو نه سكوت شوې دې. نو ددې څه حكم دې؟ ځواب: د ابويوسف رحمه الله په دليل كې مونږ ذكر كړى وو. چه د اطلاق په وخت موجب د نكاح د مهرحالاً تسليم (قبلول) دى. نود سكوت په وخت به پوره مهرمعجل شمارلې شى.

وَإِذَا أَوْفَاهَا مَهْرَهَا او هر كله چې خاوند ښځې ته دَ دې پوره مهر ور كړو نَقَلَهَا إِلٰى حَيْثُ شَاءَ نو كوم ځاى ته چې غواړى منتقل كوى به يې لِقَوْلِهِ تَعَالٰى أَسْكِنُوهُنَّ مِنْ حَيْثُ سَكَنْتُمْ مِنْ وُجْدِكُمْ ځكه چې د حق تعالى ارشاد دې اوسوئ دوى كوم كوم ځاې كې چې تاسو اوسيږئ وَقِيلَ لَا يُخْرِجُهَا إِلٰى بَلَدٍ غَيْرِ بَلَدِهَا او وئيلى شوى دى چې د ښځې دَ ښار نه بل اړخ ته به يې نه بيائى لِأَنَّ الْغُرْبَةَ تُؤْذِي ځكه چې پرد يس به ور ته تكليف اورسوى وَفِي قُرَى الْمِصْرِ الْقَرِيبَةِ لَا تَتَحَقَّقُ الْغُرْبَةُ او دَ ښار په نزدې كلو كې پرد يس نه متحقق كيږى.

تشريح:- په دې عبارت كې ئې بيان كړل. كه خاوند پوره مهر اداكړو. نو خاوند ته اختيار دې. چه دا كوم خوا ته غواړې بوئې ځى. په دليل كې ئې آيت پيش كړې دې. ژباړه د آيت: دوى له كور وركړئ. د اوسيدلو دپاره، كوم ځائې چې تاسو اوسيږئ. د خپل قدرت مطابق، او دوى ته ضررمه رسوئ. فقيه ابوالليث رحمه الله

فرمائي .چه ښځې به ددې د ښار نه علاوه بل ښار ته نه منتقل کوی .ځکه چې بل ښار د ښځې لپاره
پردیس(پردې وطن) دې.او پردی خلگ به دې ته تکلیف اورسوی . ظهیرالدین مرغینانی رحمه الله
الله تعالی قول اختیارول غوره دی ،د فقیه ابوالليث رحمه الله د قول په مقابله کې .او الله تعالی فرمائی .چه د
خاني غواړئ.ساتئ ئې.نود فقیه ابوالليث رحمه الله دا ونیل.چه ددې دښار نه علاوه بل ښار ارخ ته به ئې نه
اوباسی .صحیح نه دی .خود فقیه ابوالليث رحمه الله د ارخه خواب ورکولې شی .چه فقیه هم د الله تعالی قول
اختیارکړې دې.ځکه چې وریسې الله تعالی فرمائی .((وَلَا تُضَآرُّوهُنَّ)) ښځو ته تکلیف مه ورکوئ. اوښکاره
ده.چه ښځې ته دخپل وطن نه په وتلوکې ضرر وی .په دې وجه به ښځه دوهم ښار ته نشی منتقل کولې .البته
د ښار قریبی کلو ارخ ته د ښځې په منتقل کولوکې څه باك نشته.د قریبی کلو نه مراد د سفر د مودې نه کم
دی .ځکه چې په دومره مقدار سفرکولوسره پردیس نه متحقق کیږی .

## په مهرکې د اختلاف صورتونه اواحکام

قَالَ وَمَنْ تَزَوَّجَ امْرَأَةً چا چې دَ یوې ښځې سره نکاح او کړو ثُمَّ اخْتَلَفَا فِي الْمَهْرِ بیا دَ دوی په مهر کې اختلاف راغي فَالْقَوْلُ قَوْلُ الْمَرْأَةِ إِلَى مَهْرِ مِثْلِهَا نو دَ ښځې قول به معتبروی دَ دې دَ تمام مهر مثل پورې، وَالْقَوْلُ قَوْلُ الزَّوْجِ فِيمَا زَادَ عَلَى مَهْرِ الْمِثْلِ او دَ خاوند قول به معتبر وی په هغې مقدار کې کوم چې زیات وی په مهر مثل باند

**تشریح:-** مصنف یودا صورت بیان کړې دې.چه زوجینو په مسمی مقدار کې اختلاف اوکړو.د نکاح د قیام په
وخت،یا د ،فرقت بعد الدخول،نه پس، یاد، احدالزوجین د مرگ نه پس.مثلاً د خاوند دعوی ده.چه مهر زر
روپئ دی .او ښځه وائی .چه دوې [دوه] زره روپئ دی .نو په دې اړه کې د طرفینو رحمهما الله مذهب دادې.چه د
مهرمثل مقداره پورې به د ښځې قول نه قبلیږی .اود مهرمثل نه په زیاتی کې به د خاوند قول قبلولې شی.

وَإِنْ طَلَّقَهَا قَبْلَ الدُّخُولِ بِهَا،اوکه دَ دخول نه مخکې ئې طلاق ور کړل فَالْقَوْلُ قَوْلُهُ فِي نِصْفِ الْمَهْرِ نو دَ خاوند قول به معتبروی په نیم مهر کې وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ رحمهما الله (۱) دا دَ طرفینو رحمهما الله په نزد ده

**تشریح:-** که طلاق قبل الدخول واقع شو.نود نیم مهر په سلسله کې به صرف د خاوند قول معتبر وی .دښځې
به معتبر نه وی .

وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ: الْقَوْلُ قَوْلُهُ قَبْلَ الطَّلَاقِ وَبَعْدَهُ إِلَّا أَنْ يَأْتِيَ بِشَيْءٍ قَلِيلٍ،او امام ابویوسف رحمه الله فرمائی چې دَ خاوند قول به معتبروی .روسته دَ طلاقو نه نو هم او مخکې هم مگر که خاوند لږ شان شې راوړو وَمَعْنَاهُ مَالَا يَتَعَارَفُ مَهْرًا لَهَا هُوَ الصَّحِيحُ او دَ دې نه مراد هغه دې چه دَ ښځې دَ پاره دغه مهر متعارف نه وی دا صحیح ده

**تشریح:-** د امام ابویوسف رحمه الله مذهب دادې.چه اختلاف قبل الطلاق وی .او که بعد الطلاق وی .په دواړه
صورتونو کې به د خاوند قول معتبر وی .البته که خاوند څه معمولی شی بیان کړو.نو بیا به دده قول معتبر
نه وی .

ﺂد شئ قلیل په مراد کې د فقهاؤ اختلاف دې.د بعضو فقهاؤ رائې داده.چه د شئ قلیل نه مراد لس درهمو
نه کم دی . لنډیز داچه خاوند د لسو درهمونه د کمو دعوی اوکړه.نو دده قول به معتبر نه وی .او په لس
درهمو او ددې نه په زیاتوکې د امام ابویوسف رحمه الله په نیز د خاوند قول معتبر دې.علامه مرغینانی رحمه الله
فرمائی .صحیح خبره داده.چه دامام ابویوسف رحمه الله په نیز دَ شئ قلیل نه مراد مهرغیر متعارف دې.یعنی
خاوند د مهر دومره قلیل مقدار بیانوی .چه په عامه توگه داسې ښځې په دومره مقدار باندې نکاح نه کوی

(۱) القول الراجح هو قول الطرفين رحمهما الله كذا في الخلانية (۱\۱۸۲) وفتح القدير(۳\۲۵۲) ورد المحتار(۲\۳۹۳) والهندية (۱\۳۱۹) نقلاً عن القول الراجح (۱\۲۸٤)-



لِأَبِي يُوسُفَ أَنَّ الْمَرْأَةَ تَدَّعِي الزِّيَادَةَ وَالزَّوْجُ يُنْكِرُ دَ ابویوسف رحمه الله دلیل دا دې چې ښځه مدعی دَ زیاتی ده او خاوند منکر دې وَالْقَوْلُ قَوْلُ الْمُنْكِرِ مَعَ يَمِينِهِ إِلَّا أَنْ يَأْتِيَ بِشَيْءٍ يُكَذِّبُهُ الظَّاهِرُ فِيهِ او قول دَ منکر معتبر وی سره د ده دَ قسم نه مگر دا چې هغه داسې شې بیان کړی چه ظاهر ئې دَ ده تکذیب کوی وَهَذَا لِأَنَّ تَقَوُّمَ مَنَافِعِ الْبُضْعِ ضَرُورِيٌّ، فَمَتَى أَمْكَنَ إِيجَابُ شَيْءٍ مِنَ الْمُسَمَّى لَا يُصَارُ إِلَيْهِ او دا ځکه چې دَ منافعو دَ بضع متقوم کیدل ضرورة دی نوچه په مسمی کې د یو شی واجبول ممکن وی نوهغې ته به رجوع نشی کولې

**حل اللغة:** ① البضع:شرمگاه ② ایجاب:واجبول ]

**تشریح:-** د امام ابویوسف رحمه الله دلیل دادې.چه ښځه د مهر د زیاتوالی مدعی ده.او خاوند د زیاتوالی منکر
دې.او قاعده ده.چه مدعی سره بینه نه وی .نو په داسې صورت کې د منکرقول مع الیمین معتبر وی .نو
خاوند چې د زیاتی منکر دې.دده قول به مع الیمین معتبر وی .خو که خاوند دومره قلیل مقدار بیان کړو.د
کوم چې ښکاره حال تکذیب کوی .نو په دې قلیل مقدار کې به د خاوند قول معتبر نه وی .
دامام ابویوسف رحمه الله د ذکر کړی دلیل حاصل دادې.چه منافع د بضع غیرمتقوم دی .ځکه چې بضع مال نه
دې.البته د بضع عظمت ښکاره کاوه لپاره یا د توالد اوتناسل لحاظ ساتلو په وجه منافع د بضع ضرورة
متقوم گرځولې شوی دی .نـو ترکومـه پـورې چـې مهرمسمی (کوم چې اصل دې)واجبول ممکن وی
.مهرمثل(کوم چې ضرورة ثابت دې) ارخ ته به رجوع نشی کیدلې.په دې وجه ابویوسف رحمه الله فرمائی .چه په
مهرمسمی کې د خاوند قول معتبر وی .مهرمثل به حکم(فیصل) نه جوړه وو.

وَلَهُمَا أَنَّ الْقَوْلَ فِي الدَّعَاوِي قَوْلُ مَنْ يَشْهَدُ لَهُ الظَّاهِرُ اود طرفینو دلیل دا دې چې په دَ عوو کې دَ هغه قول معتبروی دَ چا دَ پاره چې ظاهر شاهد وی وَالظَّاهِرُ شَاهِدٌ لِمَنْ يَشْهَدُ لَهُ مَهْرُ الْمِثْلِ او ظاهر شاهد دې دَ هغه چا دَ پاره چه مهر مثل گواهی کوی د هغه لِأَنَّهُ هُوَ الْمُوجِبُ الْأَصْلِيُّ فِي بَابِ النِّكَاحِ ځکه چې موجب اصلی دا دې په باب دَ نکاح کې وَصَارَ كَالصَّبَّاغِ مَعَ رَبِّ الثَّوْبِ او دا دَ ملك دَ کپړې پشان شوه دَ رنگساز سره إِذَا اخْتَلَفَا فِي مِقْدَارِ الْأَجْرِ کله چې هغوی په مقدار دَ اُجرت کې اختلاف او کړی يُحَكَّمُ فِيهِ قِيمَةُ الصَّبْغِ په دې کې به دَ رنگ قیمت لره حکم جوړ ولې شی

**حل اللغة:** ① الصباغ:رنگ کونکې ② الثوب:جامه ]

**تشریح:-** د طرفینو رحمهما الله د دلیل حاصل دادې.چه مدعی سره که بینه موجود نه وی .نود مدعی علیه قول به مع
الیمین معتبر وی .او مدعی علیه هغه کس ته وائی .دکوم کس قول چې دښکاره حال موافق وی .او چونکه
په نکاح کې موجب اصلی مهرمثل دې.نود کوم کس قول چې د مهرمثل موافق وی .دهغه کس قول ته به د
ښکاره حال موافق وئیلې شی .
ﺂلنډیز داده.چه د طرفینو رحمهما الله په نیزمهرمثل حکم دې.که مهرمثل زر یا ددې نه کم وی .نود خاوند قول به
معتبر وی .که مهرمثل دوې [دوه] زره یا ددې نه زیات وی .نود ښځې قول به معتبر وی .او که مهرمثل زر
او دوې [دوه] زره په مینځ کې وی .نو مهر مثل به واجب وی .ددې مثال داسې دې.چه د رنگریز اوصاحب
ثوب په مینځ کې د اُجرت په مقدارکې اختلاف وی .مثلاً صاحب ثوب وائی . چې د رنگ کولومزدروی یو
درهم دې.او رنگریز وائی .چه اجرت دوې [دوه] درهمه دې.نو په دې صورت کې به د رنگ قیمت حکم
جوړولې شی .ددې صورت به داوی .چه اول به بغیر رنگ والا کپړې قیمت معلوم کړی .بیا به د رنگ شوې
کپړې قیمت معلوم کړی .مثلاً بغیر د رنگ نه د کپړې قیمت لس درهمه دې.اود رنگ شوې کپړې قیمت
دولس درهمه دې.مثلاً د رنگ په وجه دوې [دوه] درهمه اضافه شوې ده.نودا دوې [دوه] درهمه به د رنگ
قیمت وی .نودا قیمت به حکم جوړولې شی .نود رنگساز قول ددې قیمت موافق دې.نود رنگریز قول به
قبلولې شی .او که د صاحب ثوب قول ددې قیمت موافق وی .نود کپړو والا قول به معتبر وی .

ثُمَّ ذَكَرَهَاهُنَا أَنَّ بَعْدَ الطَّلَاقِ قَبْلَ الدُّخُولِ الْقَوْلَ قَوْلُهُ فِي نِصْفِ الْمَهْرِ،،بیا ئې دلته دا ذکر کړی دی چې دَ طلاق قبل الدخول په صورت کې به دَ خاوند قول معتبر وی په نیم مهر کې وَهٰذَا رِوَايَةُ الْجَامِعِ الصَّغِيرِ وَالْأَصْلِ او دا دَ جامع صغیر او مبسوط روایت دی وَذَكَرَ فِي الْجَامِعِ الْكَبِيرِ أَنَّهُ يُحَكَّمُ مُتْعَةُ مِثْلِهَا او ذکر کړی دی په جامع کبیر کې چې دَ دې متعې مثل لره به حکم جوړ ولې شی وَهُوَ قِيَاسُ قَوْلِهِمَا او دا قیاس دې دَ طرفینو رحمهما الله دَ قول لِأَنَّ الْمُتْعَةَ مُوجَبَةٌ بَعْدَ الطَّلَاقِ كَمَهْرِ الْمِثْلِ قَبْلَهُ ځکه چې متعه موجب دَ طلاقو نه نو لکه مهر مثل چې موجب دې دَ طلاقونه مخکې فَتُحَكَّمُ كَهُوَ نو متعه به حکم جوړ ولې شی دَ مهر مثل پشان

**تشریح:-** په دې عبارت سره صاحب دهدایه رحمه الله د امام محمد رحمه الله د اقوالو تعارض بیان کړی دی.تعارض دادې.چه امام محمد رحمه الله په جامع صغیر او مبسوط کې ذکر کړی دی .چه د،طلاق قبل الدخول، نه روسته که د مهریه مقدار کې زوجینو اختلاف اوکړو.نو په نیم مهر کې به د خاوند قول معتبر منلې شی .او متعه مثل به حکم نشی جوړولې.او په جامع کبیر کې ذکر کړی دی .چه متعه مثل به حکم جوړولې شی.متعه مثل چې په زوجینوکې د کوم کس د قول موافق وی .په نصف مهرکې به دده قول معتبر وی .د جامع کبیر روایت د طرفینو رحمهما الله د قول موافق دې.ځکه چې لکه څنګه د طلاق نه مخکې مهرمثل موجب د نکاح دې.دغه دول به طلاق قبل الدخول نه روسته متعه موجب د نکاح وی .نوڅنګه چې مهرمثل حکم وو.دغه دول به متعه مثل هم حکم کیدل پکار دی .د طرفینو رحمهما الله ذکرخاص طورپه دې وجه اوکړې شو.چه د ابویوسف رحمه الله په نیز په ټولوصورتونوکې د خاوند قول معتبر دې.

وَوَجْهُ التَّوْفِيقِ أَنَّهُ وَضَعَ الْمَسْأَلَةَ فِي الْأَصْلِ فِي الْأَلْفِ وَالْأَلْفَيْنِ او وجه دَ تطبیق دا ده چې امام محمد رحمه الله په مبسوط کې مسئله وضع کړې ده په یوزر او دوې [دوه] زرو کې وَالْمُتْعَةُ لَا تَبْلُغُ هٰذَا الْمَبْلَغَ فِي الْعَادَةِ او متعه عادةً دې مقدار ته نه رَسی فَلَا يُفِيدُ تَحْكِيمُهَا نو متع لره حکم جوړول مفید نه دی، وَوَضَعَهَا فِي الْجَامِعِ الْكَبِيرِ فِي الْعَشَرَةِ وَالْمِائَةِ او په جامع کبیر کې ئې مسئله وضع کړې ده په سلو او لسو کې وَمُتْعَةُ مِثْلِهَا عِشْرُونَ او دَ دې ښځې متعه مثل دَ شلو ده فَيُفِيدُ تَحْكِيمُهَا نو متعه حکم جوړول مفید دی وَالْمَذْكُورُ فِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ سَاكِتٌ عَنْ ذِكْرِ الْمِقْدَارِ او په جامع صغیر کې چې مذکور دی هغه ساکت دی فَيُحْمَلُ عَلَى مَا هُوَ الْمَذْكُورُ فِي الْأَصْلِ دَ ذکر دَ مقدار نه نو په هغې مقدار به محمول کوې شی کوم چې مذکور دې په اصل کې (مبسوط)

**حل اللغة** ① **التوفیق**: موافقت ② **ساکت**:چپ،خاموش ③ **تحکیم**:فیصله کونکې جوړول،حاکم جوړول]

**تشریح:-** په دې عبارت سره صاحب دهدایه رحمه الله دا تعارض لرې کول بیانوی .فرمائی .چه په مبسوط کې د مسئلې وضع زر او دوې [دوه] زره وو.یعنی خاوند د زرو مدعی وو.او ښځې د دوې [دوه] زرو دعوی کوله.او متعه په عامه توګه د پنځه سوه روپو مقدار ته نه رسیږی .په دې وجه متعه حکم جوړولوکې څه فائده نشته.ځکه چې خاوند د نیم مهرمسمی ، یعنی د پنځه سوه د مخکې نه اقرار کوی .نو ښځې ته به پنځه سوه درهمه ورکولې شی .د متعه حکم جوړولوهیڅ ارتیا نشته.او په جامع کبیرکې د مسئله وضع سل او لس درهمو کې ده.یعنی د خاوند دعوی ده.چه مهرلس درهمه دی .او ښځه دعوی کوی .چه مهرسل درهمه دی .او متعه مثل په عامه توګه شل درهمه وی .نو اوس به متعه حکم جوړول مفید وی .نو په دې صورت کې متعه د ښځې اړخ لپاره مؤید دې.او په جامع صغیرکې د مهرمقدار نه دې ذکر شوې.بلکه په دې سلسله کې جامع صغیر ساکت(خاموش) دې.نود جامع صغیر روایت به په هغه باندې محمول کولې شی .کوم چې په مبسوط کې ذکر دی.ځکه چې د امام محمد رحمه الله په ټولوکتابونوکې مبسوط اصل دې.او بعض خلګ داهم وائی .چه مبسوط اولنې تصنیف وو.ددې نه روسته جامع صغیر تصنیف شوې دې.نو په مبسوط کې چې څه ذکر وی .هغه به د متعارف پشان وی .

وَشَرْحُ قَوْلِهِمَا فِيمَا إِذَا اخْتَلَفَا فِي حَالِ قِيَامِ النِّكَاحِ او تشریح دَ قول دَ طرفینو رحمهما الله په دې صورت کې هر کله چې



زوجین اختلاف او کړی دَ قیام دَ نکاح په وخت د ده أَنَّ الزَّوْجَ إِذَا ادَّعَى الْأَلْفَ وَالْمَرْأَةُ الْأَلْفَيْنِ چې هر کله خاوند دعوی او کړه هزار او ښځې دوې [دوه] زره . فَإِنْ كَانَ مَهْرُ مِثْلِهَا أَلْفًا أَوْ أَقَلَّ او ښځې مهر مثل یو هزار یا کم وه دَ فَالْقَوْلُ قَوْلُهُ نو دَ خاوند قول به معتبروی وَإِنْ كَانَ أَلْفَيْنِ أَوْ أَكْثَرَ فَالْقَوْلُ قَوْلُهَا اوکه مهر مثل دوې [دوه] هزاره یا زیات وه نو دَ ښځې قول به معتبروی

**تشریح:-** په دې عبارت سره د طرفینو رحمهما الله د قول تشریح فرمائی .تشریح داده.چه هرکله زوجینود مهر په مقدارکې ، قبل الطلاق، اختلاف اوکړو.مثلاً خاوند دعوی اوکړه.چه مهر زر درهمه دی .اوښځه د دوې [دوه] سوه درهمو دعوی کوی .نو اوس که مهرمثل زر یا ددې نه کم وی .نود خاوند قول به مع الیمین معتبر وی .ځکه چې ښکاره حال د خاوند د قول موافق دې.او ښکاره حال چې دکوم کس د قول موافق وی .هم هغه مدعی علیه وی .اوپه دعوو کې که د مدعی سره بینه موجود نه وی .نود مدعی علیه قول مع الیمین معتبر وی .او که مهرمثل دوې [دوه] زره یا ددې نه زیات دې.نود ښځې قول به مع الیمین معتبر وی .

وَأَيُّهُمَا أَقَامَ الْبَيِّنَةَ فِي الْوَجْهَيْنِ تُقْبَلُ او په دوی کې چې چا هم بینه قائم کړل په دواړو صورتونو کښې به قبلولې شی وَإِنْ أَقَامَا الْبَيِّنَةَ فِي الْوَجْهِ الْأَوَّلِ تُقْبَلُ بَيِّنَتُهَا او که دواړو بینه قائم کړل نو په اول صورت کې به دَ ښځې بینه قبلولې شی لِأَنَّهَا تُثْبِتُ الزِّيَادَةَ ځکه چې دغه ثابتوی زیادت لره وَفِي الْوَجْهِ الثَّانِي بَيِّنَتُهُ او په دوهم صورت کې به دَ خاوند قبلولې شی لِأَنَّهَا تُثْبِتُ الْحَطَّ ځکه چې دغه ثابتوی کمی لره

**تشریح:-** که په زوجینوکې یوکس بینه قائم کړل.نو په دواړه صورتونوکې (مهرمثل یا د خاوند د قول شاهد وی .یا به دښځې د قول وی )به ددوی بینه قبلولې شی .او که دواړو بینه پیش کړل.نو په ړومبی صورت کې (کوم وخت چې مهرمثل د خاوند دقول شاهد وی )به د ښځې بینه قبلولې شی .او په دوهم صورت کې (کوم وخت چې مهرمثل د ښځې د قول شاهد وی ) به د خاوند بینه قبلولې شی .دلیل دادې.چه بینه هغه څیزثابتوی .کوم چې ښکاره ثابت نه وی .اوچونکه په اول صورت کې دښځې قول د ظاهرخلاف دې.نو ددې بینه به قبلولې شی .او په دوهم صورت کې د خاوند قول دظاهر خلاف دې.په دې وجه په دوهم صورت کې د خاوند بینه قبلولې شی .

وَإِنْ كَانَ مَهْرُ مِثْلِهَا أَلْفًا وَخَمْسَمِائَةٍ تَحَالَفَا او که دَ ښځې مهر مثل یو نیم هزار وه نو دواړه به قسم او خوری وَإِذَا حَلَفَا يَجِبُ أَلْفٌ وَخَمْسُمِائَةٍ او هر کله چې دواړو قسم او خوړ نو یو نیم هزار به واجب شی هٰذَا تَخْرِيجُ الرَّازِيِّ رحمه الله دا دَ امام رازی رحمه الله تخریج دې

**تشریح:-** که مهرمثل یونیم زر روپۍ وی .نود دواړو څخه به قسمونه اخستلې شی .ځکه چې په زوجینوکې هریوکس مدعی هم دې.او منکر، ا و مدعی علیه هم دې.ځکه چې خاوند دعوی کوی .چه مسمی د مهرمثل نه کم دې.او ښځه ددې منکره ده.اود ښځې دعوی د مهرمثل نه زیاته ده.او خاوند ددې منکر دې.نو هرکله چې دواړه منکر دی .نود دواړو څخه به قسمونه اخستلې شی .ځکه چې بینه موجود نه وی .نو په دې صورت کې په منکر باندې قسم واجبیږی .پاتې شوه داخبره چې د قسم ابتداء به څوک کوی .نو په دې اړه کې په قاضی خان کې ذکر دی .چه قاضی به د،ابتداء بالحلف، په سلسله کې قرعه اندازی اوکړی .اودا قرعه اندازی مستحب ده.ګنې قاضی چې د کوم کس نه غواړی . ابتداء دې اوکړی .نوکه خاوند د قسم خوړلونه انکار اوکړو.نود ښځې قول به معتبر وی .او دوې [دوه] زره درهم به واجب وی .او که ښځې د قسم نه انکار اوکړو.نود خاوند قول به معتبر وی .او زرمسمی به واجب وی .او که دواړو قسم اوخوړلو.نو یونیم زر درهم به واجب وی .زر د مسمی کاوه په طور،ځکه چې په زرو باندې دواړه متفق دی .او پنځه سوه په طریقه د مهرمثل.او که په دې دواړوکې یوکس بینه پیش کړل.نود هغه بینه به قبلولې شی .او که دواړو پیش

کړل.نو مهرمثل یونیم زر درهم به واجب وی .اود تعارض په وجه به دواړه بینه باطل وی .دا د امام ابوبکرجصاص رازی رحمه الله تخریج دی.

وَقَالَ الْكَرْخِي رحمه الله يَتَحَالَفَانِ فِي الْفُصُولِ الثَّلَاثَةِ او کرخی فرمائی چې دواړه به قسمونه خوری په دری واړو صورتونو کي ثُمَّ يَحْكُمُ مَهْرُ الْمِثْلِ بَعْدَ ذٰلِكَ بیا به ددې نه روسته مهر مثل حکم جوړولې شی.

**تشریح:-** امام کرخی رحمه الله فرمائی .چه په درې واړه صورتونوکي به د زوجینو نه قسم اخستلې شی .که مهرمثل د زوج موافق وی .او که د ښځې موافق وی .یاد هیڅ یوکس موافق نه وی .د قسم نه روسته به مهرمثل حکم جوړولې شی .ځکه چې په اصل باندې خو دواړه متفق دی .او صحیح تسمیه د مهرمثل په اړخ د رجوع نه منع کوی .خوچه کله دواړوقسمونه اوخوړل.نو تسمیه به متعذر وی .نو مهرمثل به حکم جوړولې شی .والله اعلم بالصواب (عینی شرح هدایه)

### د اصل مهرمسمی په اختلاف کې دمهرمثل وجوب

وَلَوْ كَانَ الْاِخْتِلَافُ فِي أَصْلِ الْمُسَمّٰى او که اختلاف په اصل مسمی کي وو يَجِبُ مَهْرُ الْمِثْلِ بِالْإِجْمَاعِ نو مهر مثل به واجب وی په اجماع سره ،لِأَنَّهُ هُوَ الْأَصْلُ عِنْدَهُمَا ځکه چه دا اصل دی د طرفینو رحمهما الله په نزد وَعِنْدَهُ تَعَذَّرَ الْقَضَاءُ بِالْمُسَمّٰى او د ابویوسف رحمه الله په نزد په مسمی فیصله متعذره شوه فَيُصَارُ إِلَيْهِ نو مهر مثل ته به رجوع کولې شی

**تشریح:-** د ذکر شوي مسئلې دوهم صورت دادې.چه د ژوند په حالت کي زوجینوپه اصل مسمی کي اختلاف اوکړو.مثلاً یووائی .چه د عقدنکاح په وخت مهر ذکر کړې شوې وو. دوهم ددې منکر دې.نو په دې صورت کي به دمنکرقول معتبر وی .او مهرمثل به واجب وی .

د طرفینو رحمهما الله دلیل دادې.چه مهرمثل اصل دې.نودا به واجبولې شی .او امام ابویوسف رحمه الله فرمائی .چه اصل خومهرمسمی دې.خو چونکه د اختلاف په وجه په مسمی فیصله متعذر ده.په دې وجه به مهرمثل واجب وی .او که په دې صورت کي ،طلاق قبل الدخول، وی .نو بالاتفاق به متعه واجب وی .دلته کي هم د صاحب دهدایه رحمه الله نه سهوه شویده.ځکه چې دلته کي علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی .چه دمهرمثل نه روسته په اصل کیدلوکي امام محمد رحمه الله د امام ابوحنیفه رحمه الله سره دې.حالانکه وړاندې د [واذا تزوجها علی هذا العبد اوعلی هذا العبد واحدهما اوکس] لاندې ددې صراحت شوې دې.چه امام محمد رحمه الله د امام ابویوسف رحمه الله سره دې.اود امام محمد رحمه الله په نیزمسمی اصل ده.مهرمثل اصل نه دې.هلته کي ئې اوګورئ.

### د احدالزوجین د مرګ نه روسته اختلاف اوحکم

وَلَوْ كَانَ الْاِخْتِلَافُ بَعْدَ مَوْتِ أَحَدِهِمَا او که اختلاف په زوجینو کي د یو د مرګ نه روسته وه فَالْجَوَابُ فِيهِ كَالْجَوَابِ فِي حَيَاتِهِمَا نو په دې صورت کي ځواب هغه دې کوم چې د دې دواړو د ژوند په صورت کي

**تشریح:-** دا د ذکرشوې مسئلې دریم صورت دې.صورت دمسئلې دادې.چه په زوجینوکي کوم کس ژوندې وی .ده د مړی وارثانوسره اختلاف اوکړو.که د مهرپه مقدار کي ئې اختلاف کړې وی .او که په اصل مسمی کي.په دواړه صورتونوکي به هم هغه حکم وی .کوم حکم چې د دواړو په ژوند کي د اختلاف په صورت کي وو.

یعنی که په مقدار کي اختلاف وی .نود طرفینو رحمهما الله په نیز به مهرمثل حکم وی .اود امام ابویوسف رحمه الله په نیز به د خاوند قول معتبر وی .اوکه په اصل مسمی کي اختلاف وی .نود دخول نه روسته به په اتفاق مهرمثل واجب وی .اود دخول نه وړاندې به متعه واجب وی .تفصیل په ماقبل کي تیرشو.

لِأَنَّ اعْتِبَارَ مَهْرِ الْمِثْلِ لَا يَسْقُطُ بِمَوْتِ أَحَدِهِمَا ځکه چې د مهر مثل اعتبار د احد الزوجین په مرګ سره نه ساقطیږی



**تشریح:-** دلیل دادې.چه د ،احد الزوجین، په مرګ سره د مهرمثل اعتبار نه ساقطیږی .لکه مثلاً یوې ښځې د مهرنه بغیر دیوسړی سره نکاح اوکړه.بیا د ،احد الزوجین، مړشو.نو په دې صورت کي به مهرمثل واجب وی .دغه ډول دلته کي به هم د ،احد الزوجین، په مرګ سره مهرمثل نه ساقطیږی.

### د زوجین د مرګ نه روسته د مهرپه مقدار کي اختلاف

وَلَوْ كَانَ الْاِخْتِلَافُ بَعْدَ مَوْتِهِمَا فِي الْمِقْدَارِ او که اختلاف د زوجینو د مرګ نه روسته په مقدار کي وه فَالْقَوْلُ قَوْلُ وَرَثَةِ الزَّوْجِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله نو د خاوند د وارثانو قول به معتبروی په نزد د امام ابوحنیفه رحمه الله وَلَا يُسْتَثْنَى الْقَلِيلُ او هغه د قلیل استثنی نه کوی

**تشریح:-** دا مسئله د ذکرشوو مسئلوڅلورم صورت دې.صورت د مسئلې دادې.چه د زوجینو د انتقال نه روسته ددوی وارثانو د مسمی په مقدار کي اختلاف اوکړو.نو ددې په حکم کي د احنافو رحمهم الله اختلاف دې.امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائی .چه د خاوند د وارثانو قول به مع الیمین معتبر وی .او امام ابوحنیفه رحمه الله د شی قلیل استثناء هم نه کوی .ترڅو چې د امام صاحب رحمه الله په نیز په هرشان سره د خاوند د وارثانو قول معتبر وی .اګرچه دوی د شئ قلیل دعوی اوکړی .

وعند ابی یوسف رحمه الله القول قول الورثة الا ان یأتوا بشئ قلیل او په نزد د ابویوسف رحمه الله به هم د خاوند د وارثانو قول معتبر وی مګر دا چې هغوی قلیل شی بیان کړی

**تشریح:-** اود امام ابویوسف رحمه الله په نیزبه هم د وارثانو قول معتبر وی .خو ابویوسف رحمه الله د شئ قلیل استثناء کوی .حاصل دا که د خاوند وارثانو دشئ قلیل دعوی اوکړه.نود ابویوسف رحمه الله په نیز به قابل قبول نه وی .

وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ الْجَوَابُ فِيهِ كَالْجَوَابِ فِي حَالَةِ الْحَيَاةِ.او په نزد د امام محمد رحمه الله په دې صورت کي ځواب هغه دې کوم چې په حالت د حیواة کي وه وَإِنْ كَانَ فِي أَصْلِ الْمُسَمّٰى او که اختلاف په اصل مسمی کي وه فَعِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله الْقَوْلُ قَوْلُ مَنْ أَنْكَرَهُ(۱) نو په نزد د امام ابوحنیفه رحمه الله به د هغه قول معتبر وی کوم چې د مسمی نه منکر وی فَالْحَاصِلُ أَنَّهُ لَا حُكْمَ لِمَهْرِ الْمِثْلِ عِنْدَهُ بَعْدَ مَوْتِهِمَا عَلٰى مَا نُبَيِّنُهُ مِنْ بَعْدُ إِنْ شَاءَ اللّٰهُ نو حاصل دا چې د مهر مثل حکم نشته د امام ابوحنیفه رحمه الله په نزد د زوجینو د مرګ نه روسته بنا په هغې چې موږ به ئې بیان کړو انشاءالله تعالی .

**تشریح:-** او امام محمد رحمه الله فرمائی .چه په دې صورت کي هم هغه حکم دې.کوم چې د ژوند په حالت کي داختلاف په صورت کي وو.یعنی لکه څنګه چې په ژوند کي مهرمثل حکم جوړشوې وو.دغه ډول به د دواړو د مرګ نه روسته هم مهرمثل حکم وی .امام محمد رحمه الله حالت بعدالموت قیاس کړې دې په حالت د ژوند باندې.اود ابویوسف رحمه الله دلیل په تیره شوې مسئله کي تیرشویدې.اود امام ابوحنیفه رحمه الله د دلیل حاصل دادې.چه د خاوند وارثان د مهر د زیاتوالی منکر دی .اود بینه نه کیدلو په صورت کي د منکرقول مع الیمین معتبر وی .نود خاوند د وارثانو قول به مع الیمین معتبر وی .

او که د زوجینو وارثانو اختلاف اوکړو.په اصل مسمی کي .نو امام صاحب رحمه الله د تسمیه د منکر قول معتبر ګڼړی .خود خاوند په وارثانو هیڅ څه واجب نه وی .اود صاحبینو رحمهما الله په نیز به په دې صورت کي مهرمثل باندې فیصله کولې شی .امام مالك،امام شافعی او امام احمد رحمهم الله هم ددې قائل دی .او فتوی هم ددې حضراتو په قول باندې ده.خو امام شافعی رحمه الله مهرمثل واجب ګرځوی .د تحالف(قسم) نه پس.اود صاحبینو،امام مالك اود امام احمد رحمهم الله په نیز تحالف واجب نه دې.دټولو دلیلونه په راروانه مسئله کي

(۱) القول الراجح هو قول أبی حنیفة رحمه الله كذا فی الخانیة (۱|۱۸۳) وردالمحتار(۲|۳۹۳) والبحر الرائق (۳|۳۲۰) والهندیة (۱|۳۲۱) نقلاً عن القول الراجح (۱|۲۸۵)_

ذکرشوی دی .لړشان انتظار اوکړئ.والله اعلم بالصواب

## دمهرمسمی په صورت کښي د زوجينو د مرګ نه روسته په مهرکښي وراثت

وَاِذَامَاتَ الزَّوْجَانِ او هر کله چې دَ زوجينو انتقال او شو وَقَدْسَمّٰى لَهَامَهْرًا او دَ ښځې دَ پاره ئې مهر بيان کړي وه فَلِوَرَثَتِهَااَنْ يَّاْخُذُوْاذٰلِكَ مِنْ مِيْرَاثِ الزَّوْجِ نو دَ ښځې وارثان ئې دَ دې خاوند دَ ميراث نه اغستې شي

تشریح:- صورت دمسئلې دادې.چه د ښځې او خاوند دواړو انتقال شويدې.اوس به دا کتلې شی .چه دښځې لپاره مهرمسمی وو.او که نه وو.که د ښځې لپاره مهرمسمی وو.نو په اتفاق به د ښځې وارثان د خاوند د متروکه مال نه مهرمثل وصول کوی .

وَاِنْ لَّمْ يَكُنْ سَمّٰى لَهُ مَهْرًا او که ښځې لره مهر نه وه بيان شوې فَلَاشَيْءَ لِوَرَثَتِهَا عِنْدَ اَبِيْ حَنِيْفَةَ رحمه الله نو دَ ښځې وارثانو لره به هيڅ نه وی په نزد دَ امام ابوحنيفه رحمه الله

تشریح:- او که د ښځې لپاره مهرمسمی نه وو.نو په دې صورت کې به د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز د ښځې وارثانو لپاره هيڅ نه وی .

وَقَالَا: لِوَرَثَتِهَا الْمَهْرُ فِي الْوَجْهَيْنِ او صاحبين رحمهما الله فرمائی چې وارثانو لره به ئې مهر وی په دواړو صورتونو کې مَعْنَاهُ الْمُسَمّٰى فِي الْوَجْهِ الْاَوَّلِ وَمَهْرُ الْمِثْلِ فِي الْوَجْهِ الثَّانِيْ دَ دې مطلب دا دې چې په اول صورت کې ئې به مسمی وی او په دوهم کې مهر مثل

تشریح:- اود صاحبينو رحمهما الله په نيز به په دې صورت کې مهرمثل وی .حاصل داچه د صاحبينو رحمهما الله په نيز دواړه صورتونو کې مهر دې.د تسميه په صورت کې به مسمی وی .اود عدم تسميه په صورت کې به مهرمثل وی

اَمَّا الْاَوَّلُ فَلِاَنَّ الْمُسَمّٰى دَيْنٌ فِيْ ذِمَّتِهٖ فَيُقْضٰى مِنْ تَرِكَتِهٖ هر چې اول دې نو ځکه چې مسمی دين دې دَ خاوند په ذمه وَقَدْ تَاَكَّدَ بِالْمَوْتِ او دَ غه مؤکد شو دَ مرګ په وجه فيقضی من ترکته نو دَ خاوند دَ ترکې څخه به ادا کولای شی اِلَّا اِذَا عُلِمَ اَنَّهَا مَاتَتْ اَوَّلًا فَيَسْقُطُ نَصِيْبُهٗ مِنْ ذٰلِكَ مګر هر کله چې دا معلومه شی چې ښځې مخکې مړه وه چې دَ خاوند برخه به په دې کې ساقط شی

تشریح:- .په متفق عليه مسئله باندې دليل دادې.چه مسمی د خاوند په ذمه باندې دين دې.ددې دين ثبوت به په بينه سره شوې وی .يا به د زوجينو پخپل مينځ کې په اتفاق سره شوې وی .بهرحال مسمی د خاوند په ذمه دين دی.اود مرګ په وجه مسمی مؤکد کيږی .ځکه چې دمرګ نه وړاندې دا احتمال وو.چه خاوند ،طلاق قبل الدخول، ورکړی .او ددې په وجه مهرنصف پاتې شی .خود مرګ نه روسته دا احتمال پاتې نه پاتې کيږی .نو هرکله چې د مرګ په وجه مهرمسمی مؤکد شو.نود خاوند د ترکه(مال موروث) څخه به ددې فيصله کولې شی .

خو که دا معلومه شی .چه دښځې مرګ د خاوند نه مخکې شويدې.نو په دې صورت کې به د خاوند برخه په دې مسمی کې ساقطيږی .اود خاوند برخه داده.که ښځه د اولاد والا وی .نو خاوند ته به د مال متروکه نه ربع ملاويږی .او که ښځه د اولاد والا نه وی .نو خاوند ته به نصف ملاويږی .په حقيقت کې ددې څلور صورتونه دی .يو داچه زوجين يوځائې وفات شی .او ددې علم هم وی . دوهم داچه ددې علم نه وی .چه مخکې څوک وفات شويدی .دريم داچه ددې علم وی .چه د خاوند وفات مخکې شويدې.په دې درې واړه صورتونو کې به د ښځې وارثانو ته د خاوند د ترکه نه ټوله مسمی ورکولې شی .څلورم دا چې دامعلومه وی .چه د ښځې وفات مخکې شويدې.نو په دې صورت کې به ددې مسمی نه د خاوند برخه ميراث اوښکلې شی .او پاته به دښځې وارثانو ته ورکولې شی .

وَاَمَّا الثَّانِيْ فَوَجْهُ قَوْلِهِمَا اَنَّ مَهْرَ الْمِثْلِ صَارَ دَيْنًا فِيْ ذِمَّتِهٖ كَالْمُسَمّٰى او هر چې دوهم دې نو دَ صاحبينو رحمهما الله د قول



وجه دا ده چې مهر مثل دين شو .دَ خاوند په ذمه دَ مهر مسمی پشان فَلَا يَسْقُطُ بِالْمَوْتِ كَمَا اِذَا مَاتَ اَحَدُهُمَا نو نه ساقطيږی په مرګ سره لکه چې هر کله په دوی کې يو مړ شی

تشریح:په مختلف فيه صورت کې د صاحبينو رحمهما الله دليل دادې.چه لکه څنګه مهرمسمی د خاوند په ذمه باندې دين دې.دغه ډول مهرمثل هم د خاوند په ذمه باندې دين دې.نو لکه څنګه چې مهرمسمی د مرګ په وجه نه ساقطيږی .دغه ډول مهرمثل هم د مرګ په وجه نه ساقطيږی .صاحبينو رحمهما الله دوهم قول د ،احدالزوجين، په مرګ باندې قياس کړيدې.چه لکه څنګه د ،احد الزوجين، په مرګ سره د مهرمثل اعتبار نه ساقطيږی .دغه ډول د دواړو په مرګ سره هم مهرمثل نه ساقطيږی .

وَلِاَبِيْ حَنِيْفَةَ رحمه الله اَنَّ مَوْتَهُمَا يَدُلُّ عَلَى انْقِرَاضِ اَقْرَانِهِمَا او دَ امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې چې مرګ دَ دې دواړو دَ دوی دَ هم عصرو په ختميدو باند دال دې فَيَهْرُمَنْ يُقَدِّرُ الْقَاضِيْ مَهْرَ الْمِثْلِ نو قاضی به دَ مهر مثل اندازه دَ کومې ښځې په مهر سره لګوی .

حل اللغة: ① انقراض:خميدل ② اقران:همزولی ]

تشریح:-د امام صاحب رحمه الله دليل دادې.چه د زوجينو وفات ددې دواړو دعمروالا خلګو په ختميدلو باندې دلالت کوی .او قاضی ددې ښځې د مهرمثل اندازه ددې دعمروالاښځو د مهرنه لګوی .نو هرکله چې قاضی ددې د زمانې والاښځې بيانه مومی .نو ددې د مهرمثل اندازه به څنګه لګولې شی .او هرکله چې د مهرمثل اندازه نشی لګيدلې.نوددې وجوب به هم نشی کيدلې.خوکه زمانه زړه(پخوانۍ) شوې نه ده.او زيات وخت نه دې تيرشوې.نو ددې ښځې د مهرمثل فيصله به کولې شی .

بعض مشائخو رحمهم الله د امام صاحب رحمه الله داړخه يوه ښه نکته بيان کړيده.فرمائی .چه مهرمثل چونکه د بضعې قيمت دې.او په دې وجه دا د مهرمسمی مشابه دې.ځکه چې مسمی هم د بضعې قيمت دې.او چونکه مهرمثل د غيرمال (منافع دبضع)په مقابله کې دې.په دې وجه د صله مشابه دې.مثلاً نفقه د خاوند داړخه صله ده.اومسمی نه د زوجينوپه مرګ سره ساقطيږی .اونه د ،احد الزوجين، په مرګ سره ساقطيږی .اوصله (نفقه) د زوجينو په مرګ سره هم ساقطيږی .اود احد الزوجين په مرګ سره هم ساقطيږی . اوس که په مهرمثل کې صرف د مسمی دمشابهت لحاظ اوساتلې شی .نو مهرمثل په دواړه صورتونو کې ساقطيدل نه دی پکار.نه د زوجينو په مرګ سره، اونه د، احد الزوجين، په مرګ سره.او که صرف د نفقه د مشابهت لحاظ اوساتلې شی .نو مهرمثل په دواړو صورتونو کې ساقطيدل پکار دی .د زوجينو په مرګ سره هم،اود ،احد الزوجين، په مرګ سره هم.خوموږ د دواړو مشابهتونو لحاظ اوساتلو.چونکه مهرمثل د مسمی سره مشابهت لری .ځکه به د ،احد الزوجين، په مرګ سره نه ساقطيږی . اوچونکه صله يعنی د نفقه سره مشابهت لری .په دې وجه د زوجينو په مرګ سره مهرمثل ته ساقطيږی .والله اعلم بالصواب(فتح القدير)

## ښځې له يوځه يز ليګلو باندې د خاوند د مهر،اود ښځې د هبه دعوی کول

وَمَنْ بَعَثَ اِلَى امْرَاَتِهٖ شَيْئًا او چا چې خپلې ښځې ته څه شې او ليګو فَقَالَتْ هُوَهَدِيَّةٌ نو ښځې او وې چې دَغه هديه وه وَقَالَ الزَّوْجُ هُوَمِنَ الْمَهْرِ او خاوند او وې چې دَغه مهر وه فَالْقَوْلُ قَوْلُهٗ نو قول دَ سړی معتبر دې لِاَنَّهٗ هُوَالْمُمَلِّكُ فَكَانَ اَعْرَفَ بِجِهَةِ التَّمْلِيْكِ چې مالك جوړونکی دَغه دې نو زيات واقف به وی په جهت دَ تمليك باند كَيْفَ وَاَنَّ الظَّاهِرَاَنَّهٗ يَسْعٰى فِيْ اِسْقَاطِ الْوَاجِبِ ځکه او څنګه به دَ دهٔ قول معتبر نه وی هر کله چې ظاهر دا دې چې هغه دَ واجبو ساقطولو کوښښ کوی

حل اللغة: ① المملك:مالك جوړونکې ② يسعی: کوښښ کوی ③ اسقاط:ساقط کول]

تشریح:-صورت د مسئلې دادې.چه خاوند خپلې ښځې ته څه سامان اوليګلو.او وې وئيل.چه دا مهردې.او ښځه وائی .چه دا هديه ده.نو په دې صورت کې به د خاوند قول مع اليمين معتبر وی .دليل دادې .چې

خاوند مالك جوړونکي دي.نو د تملیك په اړخ به دي زیات خبردار وی .چه تملیك د هدیه په طوردي.او که د مهر ادا کاوه په طور دي.او د خاوند قول به ځنګه معتبر نشی منلي.حالانکه ښکاره حال هم د دي شاهد دي.ځکه چي د انسان ړومبي کوښښ داوی .چه دي د خپل ځان نه واجب ساقط کړی .داسي نه وی .چه واجب دي پاته پاتي وی .او احسانونه دي کوی .

قَالَ إِلَّا فِي الطَّعَامِ الَّذِي يُؤْكَلُ فَإِنَّ الْقَوْلَ قَوْلُهَا مګر په هغې طعام کي کوم چي خوړي شی په دغې کي قول د ښځي معتبر دي وَالْمُرَادُ مِنْهُ مَا يَكُونُ مُهَيَّأً لِلْأَكْلِ لِأَنَّهُ يَتَعَارَفُ هَدِيَّةً او د دي نه مراد هغه دي.کوم چي د خوړلو د پاره تیار شوي وی .چي د دي هدیه کیدل متعارف دی

حل اللغة* ① مهیا: تیارشوي ② هدية: ډالۍ]

تشریح:-امام محمد رحمه الله په جامع صغیر کي فرمائی .که خاوند ښځي ته د خوراك څه څیزاولیګلو.مثلاً اوربشه کړي غوښه، پخکړي خوراك،او هغه میوي چي د زیات وخته پوري پاته نه پاتي کیږی .نو په دي څیزونوکي به دښځي قول معتبر وی .ځکه چي د دي څیزونو هدیه کیدل متعارف دی . په عامه توګه دا شیان (څیزونه) په هدیه کي لیږلي شی .د مهرادا کاوه په طورنشی لیګلي.

فَأَمَّا فِي الْحِنْطَةِ وَالشَّعِيرِ هر چي غنم او وربشي دي فَالْقَوْلُ قَوْلُهُ لِمَا بَيَّنَّا نو په دي کي قول د سړی معتبر دي لکه چي موږ بیان کړل وَقِيلَ مَا يَجِبُ عَلَيْهِ مِنَ الْخِمَارِ وَالدِّرْعِ وَغَيْرِهِمَا لَيْسَ لَهُ أَنْ يَحْتَسِبَهُ مِنَ الْمَهْرِ او وئیلي شوی دی چي کوم شي په خاوند واجب دي لکه لوپټه او قمیص وغیره دغو لره مهر شمارول د خاوند د پاره جائز نه دی لِأَنَّ الظَّاهِرَ يُكَذِّبُهُ، وَاللَّهُ أَعْلَمُ ځکه چي ظاهر د دي تکذیب کوی والله تعالی أعلَمُ .

حل اللغة* ① الحنطة: غنم ② الشعیر: اوربشي ③ الخمار: پروني ،④ الدرع: قمیص]

تشریح:- البته که ښځي ته ئي غنم، اوربشي، شهد، غوړي ، غوزان، بادام، اوړه، شکر، ژوندئ وزه یا بل څه داسي شی ئي اولیګلو.چه پاته پاتي کیدلو والا وی .ډیر زر نه خرابیږی .نو په دي صورت کي به هم د خاوند قول معتبر وی .د تیرشوی دلیل په وجه .یعنی خاوند اول د واجب ساقطولو کوښښ کوی .د بعضو رائي داده.که خاوند ښځي ته داسي څه سامان اولیګلو.کوم چي په خاوند باندي واجب وو.مثلاً پټو (څادر) کُرته، پائجامه، اود کور د استعمال شیان (څیزونه )،نو خاوند دا په مهرکي نشی شمارلي.ځکه چي ښکاره حال د خاوند د حال تکذیب کوی .خو که خاوند موزي یا پټو (څادر) وغیر د واجب نه زیات اولیګلو.نودا په مهرکي شمارلي شی .

## د کافرانو د نکاح بیان

فصل: وَإِذَا تَزَوَّجَ النَّصْرَانِيُّ نَصْرَانِيَّةً عَلَى مَيْتَةٍ أَوْ عَلَى غَيْرِ مَهْرٍ فصل :او هر کله چي نکاح او کړو نصرانی د نصرانیه ښځي سره په ټوك باندي او یا بغیر د مهر نه وَذَلِكَ فِي دِينِهِمْ جَائِزٌ او دا په دین د دوی کي جائز وو فَدَخَلَ بِهَا أَوْ طَلَّقَهَا قَبْلَ الدُّخُولِ بِهَا أَوْ مَاتَ عَنْهَا او دخول ئې پري او کړو او یا ئې طلاقه کړه مخکي د دخول نه د دي سره او یا تري مړشو فَلَيْسَ لَهَا مَهْرٌ نو ښځي لره مهر نشته وَكَذَلِكَ الْحَرْبِيَّانِ فِي دَارِ الْحَرْبِ او دارنګ دوي (ادوه) حر بیان دی په دارالحرب کي وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله (١) او دا په نزد د امام ابوحنیفه رحمه الله باند دی وَهُوَ قَوْلُهُمَا فِي الْحَرْبِيَّيْنِ او دا قول دي د صاحبینو رحمهما الله په دوي (ادوه) حر بیانو کي وَأَمَّا فِي الذِّمِّيَّةِ فَلَهَا مَهْرُ مِثْلِهَا إِنْ مَاتَ عَنْهَا أَوْ دَخَلَ بِهَا او هر چي ذمیه ده نو هغې لره مهر مثل دي که د دي نه مړشو یا ئې ورسره دخول او کړو وَالْمُتْعَةُ إِنْ

(١) القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في ردالمحتار(٣٩٩\٢) والبحرالرائق (٣٢۶\٣) والهندية (٣٢٧\١) نقلاً عن القول الراجح (٢٨٧\١)-



طَلَّقَهَا قَبْلَ الدُّخُولِ بِهَا او متعه ده ورته که د دخول نه مخکي ئې طلاقه کړه

تشریح:- مردار په مهرکي مقررکول یاد مهر نه بغیر نکاح کول ۞ په متن کي د نصرانی او نصرانیه نه مراد ذمی او ذمیه دی .صورت د مسئلي دادي.چه په دار اسلام کي یو نصرانی سړی د نصرانیه ښځي سره نکاح اوکړه.یو مردار ئي مهر مقرر کړو.یا بغیر د مهر نه ئي نکاح اوکړه.اوحال دادي.چه بغیر د مهر نه نکاح ددوی په دین کي جائز هم دی .نو په دي صورت کي به دښځي لپاره مهر وی .او که نه؟ په دي اړه کي اختلاف دي.دامام صاحب رحمه الله په نیزبه مهر نه وی .اود صاحبینو او امام زفر رحمهم الله په نیز به دي صورت کي دښځي لپاره مهرمثل وی . او په دارحرب کي که حربی سړی د حربیه ښځي سره بغیر دمهر نه نکاح اوکړه.یا ئي په مردار باندي نکاح اوکړه.نو په دي صورت کي به د امام صاحب او صاحبینو رحمهم الله په نیزبه د ښځي لپاره مهر نه وی .اود امام زفر رحمه الله په نیزبه د حربیه کافري لپاره مهرمثل وی .حاصل داچه د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز د ذمیه اوحربیه دواړو لپاره د مهرد عدم وجوب حکم دي.

وَقَالَ زُفَرُ رحمه الله: لَهَا مَهْرُ الْمِثْلِ فِي الْحَرْبِيَّيْنِ أَيْضًا امام زفر رحمه الله فرمائی چي د ښځي د پاره مهر مثل دي په دوو حربیانو کي هم

تشریح:- اود امام زفر رحمه الله په نیز دواړو صورتونوکي به مهرمثل واجب وی .اوصاحبین رحمهما الله په حربیه کي د امام صاحب رحمه الله سره دي.او په ذمیه کي د امام زفر رحمه الله سره دي.نوکه ذمی ذمیه ښځي ته ،بعد الدخول، طلاق ورکړو.یا ذمی مړشو.نو په دواړه صورتونوکي به د ذمیه لپاره مهرمثل وی .او که قبل الدخول ئي طلاق ورکړو.نود ذمی لپاره به متعه وی .

لَهُ أَنَّ الشَّرْعَ مَا شَرَعَ ابْتِغَاءَ النِّكَاحِ إِلَّا بِالْمَالِ د امام زفر رحمه الله دلیل دا دي چي شریعت نه دي مشروع کړي ابتغاء د نکاح مګر په عوض د مال سره وَهَذَا الشَّرْعُ وَقَعَ عَامًّا او دا شریعت واقع شوي دي عام فَيَثْبُتُ الْحُكْمُ عَلَى الْعُمُومِ نو حکم به په عموم باند ثابت وی

حل اللغة* ① ابتغاء: لټون، طلب کول ② منقطة: ختم شوي ③ تباین: اختلاف ④ الدار: ملك ،وطن]

تشریح:- د امام زفر رحمه الله دلیل دادي.چه شریعت د نکاح طلب په مال سره مشروع کړي دي.لکه چي ارشاد دي. ((أَنْ تَبْتَغُوا بِأَمْوَالِكُمْ)) اودا شریعت عام واقع شوي دي.ځکه چي د نبی کریم ﷺ بعثت د ټولو لپاره عام وو.د الله تعالی ارشاد دي. ((قُلْ يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنِّي رَسُولُ اللَّهِ إِلَيْكُمْ جَمِيعًا)) او پخپله د نبی کریم ﷺ ارشاد دي. [بعثت إلى الأسود والأحمر يعني العرب والعجم] او په دي وجه هم چي دا شریعت عام دي.چه دا دین د تیرشوی ټولو دینونو لپاره ناسخ دي.نو هرکله چي داشریعت عام دي. نو د دي حکم به هم ،علی سبیل العموم،د مؤمن اوغیرمؤمن ټولو لپاره ثابت وی . لنډیز داچه په نکاح کي ،ابتغاء بالمال علی سبیل العموم، مشروع ده.او کوم څیزچه ،علی سبیل العموم، مشروع وی .د هغې حکم هم ،علی سبیل العموم،ثابت وی .نو لکه ځنګه چي مردار مهرجوړولو،او بغیر د مهرنه د نکاح کاوه په صورت کي مسلمانه ښځه د مهرمثل مستحق وی .دغه ډول به ذمیه او حربیه ښځه هم د مهرمثل مستحقه وی .اونکاح د معاملاتو د باب څخه ده.اوکافران په معاملاتو کي د شرع مخاطب دی .نو په معاملاتو کي چي کوم حکم د مسلمانانو لپاره وی .هم هغه حکم به د ذمیانو اوحربیانو لپاره هم وی .

وَلَهُمَا أَنَّ أَهْلَ الْحَرْبِ غَيْرُ مُلْتَزِمِينَ أَحْكَامَ الْإِسْلَامِ د صاحبینو رحمهما الله دلیل دا دي چي حر بیان د احکامو د اسلام التزام کوونکی نه دی وَوِلَايَةُ الْإِلْزَامِ مُنْقَطِعَةٌ لِتَبَايُنِ الدَّارِ او ولایت د الزام منقطع دي د تباین د دار

تشریح:-د صاحبینو رحمهما الله دلیل دادي.چه حربیانو خو نه پخپله د اسلام احکام په خپل ځان باندي لازم کړی دی

.اونه موږ ته د لازمولو ولايت حاصل دی.ځکه چې داراسلام او دارکفرکي تباين دی.نو هركله چې دواړه خبري نشته.نوبيا به په حربيانو باندې د اسلام احکام څنګه نافذ کولي شي ؟

بِخِلَافِ أَهْلِ الذِّمَّةِ په خلاف دَ اهل ذمو نه لِأَنَّهُمُ الْتَزَمُوا أَحْكَامَنَا فِيمَا يَرْجِعُ إِلَى الْمُعَامَلَاتِ كَالرِّبَا وَالزِّنَا ځکه چې دوی زموږ دَ دې احکامو التزام کړيدې کوم چې دَ معاملاتو اړخ ته راجع دی لکه ربوا او زناء وَوِلَايَةُ الْإِلْزَامِ مُتَحَقِّقَةٌ لِاتِّحَادِ الدَّارِ او ولايت دَ الزام متحقق دی دَ اتحاد دَ دار په وجه

تشريح:-ددې په خلاف ذميان دی .ځکه چې ذميانوخو اول د عقدذمه په وجه په معاملاتو کي د اسلام احکام پخپله خپل خان باندې لازم کړی دی .لکه د زنا اوسود نه دوی هم دغه ډول منع کړې شوی دی .لکه څنګه مسلمانان که د زنا ارتکاب اوکړی .نوحد به جاری کيږی .او که د لږ وخت لپاره اومنو.چه ذميانو د اسلام احکام نه دی لازم کړی.خود دار د اتحاد په وجه موږ لپاره د ولايت الزام ثابت دی.ددې په نتيجه کي به په ذميانو باندې د اسلام احکام لازم کولي شي .

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله أَنَّ أَهْلَ الذِّمَّةِ لَا يَلْتَزِمُونَ أَحْكَامَنَا فِي الدِّيَانَاتِ دَ امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دی چې ذميان په ديانا تو کي زموږ دَ احکامو التزام نه کوی وَفِيمَا يَعْتَقِدُونَ خِلَافَهُ فِي الْمُعَامَلَاتِ او نه په هغه معاملاتو کي دَ کومو خلاف چې هغوی اعتقاد لری

تشريح:- داامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادی.چه موږ دا نه منو.چه ذميانو په معاملاتوکي زموږ احکام لازم کړی دی .ځکه چې د عقدذمه په وجه خونه دوی په دياناتو(مونځ، روژه وغيره)کي زموږ احکام لازمونکی دی .اونه په هغه معاملاتوکي په کوموکي چې دوی زموږ د اعتقاد نه خلاف عقيده لری .مثلاً موږ نکاح بغير دګواهانو،د شرابو اوخنزير خرڅول،ددې د حرمت عقيده لرو.او ذميان ددې خلاف عقيده لری .

وَوِلَايَةُ الْإِلْزَامِ بِالسَّيْفِ وَبِالْمُحَاجَّةِ او ولايت دَ الزام په توره سره دی يا په ذريعه دَ دليل غالب راتلو سره وَكُلُّ ذَلِكَ مُنْقَطِعٌ عَنْهُمْ بِاعْتِبَارِ عَقْدِ الذِّمَّةِ او په دې کي هر يو منقطع دی دَ دوی نه په اعتبار دَ عقد ذمه سره فَإِنَّا أُمِرْنَا بِأَنْ نَتْرُكَهُمْ وَمَا يَدِينُونَ فَصَارُوا كَأَهْلِ الْحَرْبِ ځکه چې موږ مامور يوچه دوی لره پريږدو پخپل دين باندې نو اهل ذمه هم دَ اهل حربو پشان شو

حل اللغة* ① السيف:توره ② المحاجة:جګړه ③ منقطع:ختم شوی]

تشريح:- دا عبارت د صاحبينو رحمهما الله د دليل ځواب دی.حاصل دځواب دادی.چه ولايت د الزام په توره باندې متحقق کيږی .يا په محابه او مباحثه سره.اود عقد ذمه په وجه په دې کي هر يومنقطع دی.اوموږ ته حکم شوی دی.چه موږ دوی ددوی په دين باندې پريږدو.نو ذميان د حربيانو مشابه شو.نوکوم حکم چې د حربيانو وی .هم هغه حکم به د ذميانوهم وی .

بِخِلَافِ الزِّنَا په خلاف دَ زناء نه لِأَنَّهُ حَرَامٌ فِي الْأَدْيَانِ كُلِّهَا ځکه چې زناء په ټولو دينونو کي حرامه ده

تشريح:- دا عبارت د صاحبينو رحمهما الله د قول ځواب دی. لنډيز داچه په زنا باندې قياس کول صحيح نه دی .ځکه چې زنا په ټولو دينونو کي حرام ده

وَالرِّبَا مُسْتَثْنًى عَنْ عُقُودِهِمْ لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ أَلَا مَنْ أَرْبَى فَلَيْسَ بَيْنَنَا وَبَيْنَهُ عَهْدٌ (۱) او ربوا دَ دوی دَ عقودو نه مستثنی ده دَ ارشاد نبوی عليه السلام په وجه خبردار چا چې دَ ربوا معامله او کړه نو زموږ او دَ دهٔ په مينځ کي هيڅ عهد نشته

۱) غربه الزيلعی رحمه الله بهذا اللفظ ثم قال وروی ابن ابی شيبة فی مصنفه فی باب ذکرأهل نجران ...عن الشعبی قال کتب رسول ﷺ إلی أهل نجران وهم نصاری أن من بايع منکم بالرباء فلا ذمة له (نصب الرأية ۳/۲۶۶)_



تشريح:- .او پاتې شو سود ،نودا د عقد ذمه نه مستثنی دی.يعنی ذميان ددی په خپل دين باندې د پرينښولو حکم دی.سوا د سود نه.لکه چې صاحب دهدايه رحمه الله د نبی کريم ﷺ قول نقل کړې دی.[الا من اربی] يعنی خبردار کوم کس چې د سود معامله اوکړه.زموږ اود هغوی په مينځ کي هيڅ عهد نشته.په بويل حديث کي دی .چه نبی کريم ﷺ د نجران والو سره صلح اوکړله.او ددوی دارخه ئې يوخط اوليکلو.چه په هغې کي وو.[ولا تاکلوا الربا فمن أکل منهم الربا فـذمتی منـهم برينـة]يعنی سود مه خورئ.په دوی کي چې کوم کس سود اوخوړلو.زما ذمه د هغوی نه بری ده.او په مصنف ابن ابی شيبه کي دی [کتب رسـول الله ﷺ الی نجـران وهـم نصاری ان من بايع منکم بالربا فلا ذمة له]يعنی رسول الله ﷺ نجران اړخ ته يوخط اوليکلو.او دوی نصاری دی .ليکل داوو.چه کوم يوکس په تاسوکي په سود سره د اخستلوخرڅولو معامله اوکړه.د هغه لپاره ذمه نشته.

وَقَوْلُهُ فِي الْكِتَابِ أَوْ عَلَى غَيْرِ مَهْرٍ او دَ امام محمد رحمه الله قول په کتاب کي ،او علی غيرمهر، يَحْتَمِلُ نَفْيَ الْمَهْرِ وَيَحْتَمِلُ السُّكُوتَ دَ نفی دَ مهر هم احتمال لری او دَ سکوت هم احتمال لری وَقَدْ قِيلَ: فِي الْمَيْتَةِ وَالسُّكُوتِ رِوَايَتَانِ او وئيلی شوی دی چې دَ مرداري او سکوت په اړه کي دوې [دوه] روايتونه دی وَالْأَصَحُّ أَنَّ الْكُلَّ عَلَى الْخِلَافِ او أصح دا ده چې په ټولو کي اختلاف دی .

تشريح:- په جامع صغيرکي د امام محمد رحمه الله په قول[او علی غيرمهر...] کي دوې [دوه] احتماله دی.يو داچه د عقد نکاح په وخت دمهرصراحتاً نفی شوې ده. دوهم داچه د عقد په وخت زوجين د مهرذکر کاوه نه ساکت دی .ظاهر روايت کي دادی.که په صراحت سره دمهر نفی شوی وی .نود ذميه ښځي لپاره به مهرمثل وی .اود سکوت په صورت کي به د ذميه ښځي لپاره هيڅ نه وی .د بعضوحضراتو رائې داده.چه د مردار په مهرجوړولوکي ،اود مهرذکر کاوه نه د سکوت په صورت کي د امام ابوحنيفه رحمه الله نه دوې [دوه] روايته دی .د يو روايت مطابق مهرمثل به واجب وی .لکه څنګه چې د صاحبينو رحمهما الله مذهب دی.اود دوهم روايت مطابق د ذميه ښځي لپاره هيڅ به واجب نه وی .لکه څنګه چې په متن کي دی .خو صحيح خبره داده.چه په ټولو صورتونوکي (که مردار مهر جوړ شوی وی ،او که دمهر نفی شوی وی ،اوکه دمهرذکر کاوه نه سکوت شوی وی ) اختلاف دی.د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به د ذميه ښځي لپاره هيڅ واجب نه وی .اود صاحبينو رحمهما الله په نيز به مهرمثل واجب وی .(فتح القدير) والله اعلم بالصواب

## د ذميانو په شراب اوخنزير باندې د نکاح کول، او قبل القبض مسلمانيدل

فَإِنْ تَزَوَّجَ الذِّمِّيُّ ذِمِّيَّةً عَلَى خَمْرٍ أَوْ خِنْزِيرٍ که نکاح او کړو يو ذمی دَ ذميه سره په شرابو او يا خنزير ثُمَّ أَسْلَمَا أَوْ أَسْلَمَ أَحَدُهُمَا بيا دغه دواړه مسلمانان شو يا يو په کي مسلمان شو فَلَهَا الْخَمْرُ وَالْخِنْزِيرُ نو دَ ښځې دَ پاره شراب او خنزير دی وَمَعْنَاهُ إِذَا كَانَا بِأَعْيَانِهِمَا وَالْإِسْلَامُ قَبْلَ الْقَبْضِ مطلب ئې دا دی چې دغه په خمر او معين خنزير باندې وی او مسلمانيدل ئې دَ قبضې نه مخکي وی وَإِنْ كَانَا بِغَيْرِ أَعْيَانِهِمَا او که دا غير معين وی فَلَهَا فِي الْخَمْرِ الْقِيمَةُ وَفِي الْخِنْزِيرِ مَهْرُ الْمِثْلِ، وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله (۱) نو ذميه لره به دَ شرابو په صورت کي قيمت وی او دَ خنزير په صورت کي به مهر مثل وی او دا په نزد دَ امام ابوحنيفه رحمه الله ده

تشريح:- صورت د مسئلې دادی.چه يو ذمی سړی د ذميه ښځي سره نکاح اوکړله.او معين شراب،يا معين خنزير ئې مهر مقررکړو.بيا په مهرباندې د قبضه کاوه نه مخکي دواړه مسلمانان شو.يا په دواړوکي يوکس مسلمان شو.نوپه دې صورت کي به د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيزد ذميه ښځي لپاره هم هغه معين شراب او معين خنزير وی .اوکه غيرمعين شراب،اوغيرمعين خنزير مهر وی .نو امام صاحب رحمه الله فرمائی .چه د

۱) القول الراجح هو قول أبی حنيفة رحمه الله کذا فی شرح الوقاية (۲/۴۷) وکنز(ص،۱۰۵) والدرالمختار(۲/۴۰۰) نقلاً عن القول الراجح (۱/۲۸۹)_

غيرمعين شراب په صورت كي به د ذميه ښځې لپاره قيمت واجب وی .اود غيرمعين شرابو په صورت كي
به د ذميه ښځې لپاره مهرمثل واجب وی .

وَقَالَ أَبُوْيُوْسُفَ رحمه الله: لَهَا مَهْرُ الْمِثْلِ فِي الْوَجْهَيْنِ فرمائی چې ذميه لره په دواړو صورتونو كي مهر مثل دي
تشريح:- د امام ابويوسف رحمه الله په نيز په معين اوغيرمعين دواړه صورتونو كي به دښځې لپاره مهرمثل وی
وَقَالَ مُحَمَّدٌ: لَهَا الْقِيْمَةُ فِي الْوَجْهَيْنِ امام محمد رحمه الله فرمائی چې ذميه لره په دواړو صورتونو كي قيمت دي
تشريح:- .اود امام محمد رحمه الله په نيز په معين اوغير معين په دواړه صورتونو كي به د ذميه ښځې لپاره قيمت
واجب وی .

وَجْهُ قَوْلِهِمَا أَنَّ الْقَبْضَ مُؤَكِّدٌ لِلْمِلْكِ فِي الْمَقْبُوْضِ لَهُ فَيَكُوْنُ لَهُ شَبَهٌ بِالْعَقْدِ دَ صاحبينو رحمهما الله دَ قول وجه دا ده چې
قبضه په مقبوض كي موكده دَ ملك ده نو دې لره دَ عقد سره مشابهت شو فَيَمْتَنِعُ بِسَبَبِ الْإِسْلَامِ كَالْعَقْدِ په دې
وجه دَ عقد پشان قبضه به هم دَ اسلام په وجه ممتنع وی وَصَارَ كَمَا إِذَا كَانَا بِغَيْرِ أَعْيَانِهِمَا او دا داسې شوه لكه
چې دغه دواړه غير معين وی

تشريح:- چونكه امام ابويوسف او امام محمد رحمه الله دعين خمر اوعين خنزير په عدم وجوب كي دواړه شريك
دی .چه كله دا دواړه معين وی .په دې وجه صاحب دهدايه رحمه الله د دواړو مشترك دليل بيان كړې دی.فرمائی
.چه د صاحبينو رحمهما الله دليل دادې.چه قبضه په معين مقبوض كي ملك موكد كوی .هم دا وجه ده.كه مهرمسمی
د ښځې د قبضه كاوه نه مخكې هلاك شی .نودا به د خاوند د مال نه هلاك وی .او په خاوند به ددې مهرمثل
واجب وی . اودا د ذوات الامثال څنې وو.او قيمت به واجب وی .كه مسمی د ذوات القيم څنې وی .كه د
قبضه كاوه نه روسته هلاك شو.نود ښځې د مال څخه به هلاك وی .او هم دغه ډول د امام صاحب رحمه الله په نيز
د قبضه نه مخكې په مهركې په ښځه باندې به زكاة نه وی .اود مهرقبضه كولونه روسته به په ښځه باندې
زكاة واجب وی .نوهركله چې قبضه موكد د ملك دې.نوقبضه مشابه شوه.د عقدسره.څكه چې قبضه
اوعقد، په دې دواړو كي هريو په ملك كي موثر دې.نولكه څنګه چې د اسلام نه روسته د عقد د ابتداء په
وجه د شرابو اود خنزير تمليك ممنوع دې.دغه ډول د اسلام نه روسته هم په شرابو اوخنزير باندې قبضه
ممنوع ده.اودا داسې ده.لكه غيرمعين شراب،او غيرمعين خنزير.يعنی لكه څنګه چې په غيرمعين كي عين
شراب او عين خنزير نه واجبيږی .دغه ډول په معين كي به هم عين خمر اوعين خنزير واجب نه وی .

وَإِذَا الْتَحَقَتْ حَالَةُ الْقَبْضِ بِحَالَةِ الْعَقْدِ او هر كله چې قبض دَ حالت دَ عقد سره لاحق شو فَأَبُوْيُوْسُفَ رحمه الله يَقُوْلُ: لَوْ كَانَا
مُسْلِمَيْنِ وَقْتَ الْعَقْدِ نو اوس امام ابويوسف رحمه الله فرمائی چې كه دغه دواړه دَ عقد په وخت مسلمانان وې يَجِبُ
مَهْرُ الْمِثْلِ فَكَذَا هَاهُنَا نو مهر مثل به واجب وه نو دَغسې به دلته واجب وی

تشريح:- نو هركله چې د قبضه حالت دعقد حالت سره مشابه شو.اود عين شراب،اوعين خنزير سپارل ممتنع
شو.نو امام ابويوسف رحمه الله فرمائی .كه په شرابو اوخنزير باندې د نكاح د عقد په وخت دا دواړه مسلمانان
وو.نو مهرمثل به واجب وو.نوهر كله چې د قبضه په وخت مسلمانان دی .نو اوس به هم مهرمثل واجب وی .

وَمُحَمَّدٌ رحمه الله يَقُوْلُ صَحَّتِ التَّسْمِيَةُ او امام محمد رحمه الله فرمائی چې تسميه صحيح ده لِكَوْنِ الْمُسَمَّى مَالًا عِنْدَهُمْ، إِلَّا أَنَّهُ
امْتَنَعَ التَّسْلِيْمُ لِلْإِسْلَامِ څكه چې مسمی دَ دوی په نزد مال دې مګر دَ اسلام په وجه سره دَ مسمی تسليم ممتنع
شو فَتَجِبُ الْقِيْمَةُ، كَمَا إِذَا هَلَكَ الْعَبْدُ الْمُسَمَّى قَبْلَ الْقَبْضِ نو قيمت به واجب وی لكه هر كله چې عبد مسمی د
قبض نه مخكې هلاك شی

تشريح:- او امام محمد رحمه الله فرمائی .چه دخمر او خنزير تسميه صحيح نه ده.څكه چې د ذميانوپه نيز مسمی



مال دې.خو چونكه د اسلام په وجه د شرابو اوخنزير سپارل منع دی .په دې وجه به ددې قيمت واجب وی
.لكه كه د قبضه نه مخكې عبدمسمی هلاك شی .نو ددې قيمت واجب وی .دغه ډول به دلته كې هم د شرابو
او خنزير قيمت واجب وی .

وَلِأَبِي حَنِيْفَةَ رحمه الله أَنَّ الْمِلْكَ فِي الصَّدَاقِ الْمُعَيَّنِ يَتِمُّ بِنَفْسِ الْعَقْدِ او دَ امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې چې ملك په
مهر معين كي په نفس عقد سره تماميږی وَلِهٰذَا تَمْلِكُ التَّصَرُّفَ فِيْهِ په دې وجه سره ښځه په مهر معين كي دَ تصرف
مالكه وی وَبِالْقَبْضِ يَنْتَقِلُ مِنْ ضَمَانِ الزَّوْجِ إِلَى ضَمَانِهَا او دَ قبضې په وجه سره مهر دَ خاوند دَ ضمان نه دَ
ښځې اړخ ته منتقل كيږی وَذٰلِكَ لَا يَمْتَنِعُ بِالْإِسْلَامِ كَاسْتِرْدَادِ الْخَمْرِ الْمَغْصُوْبَةِ او دا انتقال دَ اسلام په وجه سره ممتنع نه
دی لكه مغصوب شراب واپس كول وَفِي غَيْرِ الْمُعَيَّنِ الْقَبْضُ يُوْجِبُ مِلْكَ الْعَيْنِ او په مهر غير معين كي قبض
ملك عين لره واجب كوونكې ده فَيَمْتَنِعُ بِالْإِسْلَامِ نو دَ اسلام په وجه سره به قبض ممتنع وی

حل اللغة: ① الصداق:مهر ② استرداد:واپس كول ]

تشريح:- د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې.چه په مهرمعين كي په نفس عقد سره ملك مكمل كيږی .څكه چې د
ملك دوې [دوه] قسمونه دی .ملك رقبه او ملك تصرف.اود ښځې لپاره د قبضه نه وړاندې دواړه ثابت دی
.هم دا وجه ده.چه ښځه په مهرباندې د قبضه نه وړاندې په دې كي هرقسمه تصرف اختيار منده ده.اوكه د
قبضه كولونه مخكې دامهر هلاك شو.نودا به دښځې د ملك نه هلاك وی .د خاوند د ملك څخه به هلاك نه
وی . لنډيز داچه په مهرمعين كي قبضه موجب د ملك نه وی .پاتې شوه دا مسئله چې بيا د قبضه كولونه څه
فائده؟ نوصاحب دهدايه رحمه الله ځواب وركوی .چه د قبضه په وجه ملك د خاوند د ضمان نه د ښځې ضمان اړخ
ته منتقل كيږی .اودا انتقال د ملك د اسلام په وجه منع نه دې.مثلاً د يوذمی نه چا دده شراب غصب كړل
دې نه روسته ذمی مسلمان شو.نواوس به دې مسلمان ذمی له د غاصب نه دا مغصوب شوی شراب اخستل
جائز وی .او په غيرمعين كي قبضه موجب د ملك ده.اود اسلام په وجه د شرابو او خنزير تمليك دواړه ممتنع
دی .نو قبضه به هم ممتنع وی .

بِخِلَافِ الْمُشْتَرِيْ په خلاف دَ مشتری نه لِأَنَّ مِلْكَ التَّصَرُّفِ فِيْهِ إِنَّمَا يُسْتَفَادُ بِالْقَبْضِ څكه چې ملك تصرف دَ قبضې نه
مستفاد كيږی وَإِذَا تَعَذَّرَ الْقَبْضُ فِي غَيْرِ الْمُعَيَّنِ او هر كله چې قبضه په غير معين كي متعذره شوه، لَا تَجِبُ الْقِيْمَةُ
فِي الْخِنْزِيْرِ نو دَ خنزيرپه صورت كي به قيمت واجب نه وی لِأَنَّهُ مِنْ ذَوَاتِ الْقِيَمِ فَيَكُوْنُ أَخْذُ قِيْمَتِهِ كَأَخْذِ عَيْنِهِ څكه
چې خنزير دَ ذوات القيم نه دې نو دَ دې قيمت لره اخستل دی

تشريح:- په دې عبارت كي مشتری په فتح د ،راء، او په كسره د ،راء، دواړه كيدلې شی .په اول صورت كي به
مبيع مراد وی .او مطلب به دا وی .چه په مهرمعين كي ملك په نفس عقد سره كامليږی .په خلاف د بيع.څكه
چې په بيع كي د قبضه په وجه په مهرمعين كي د تصرف ملك حاصل وی .په نفس بيع سره نه حاصليږی
.مثلاً يو كس شراب ياخنزيرخرڅ كړل.يا په اخستلې شوی باندې د قبضه نه وړاندې مشتری (اخستونكی)
اسلام راوړلو.نو دده لپاره قبضه جائز نه ده.او كه په كسره د ،راء، سره وی .نو مطلب به دا وی .چه په
مهرمعين كي د ښځې لپاره د نفس عقد په وجه ملك مكمل كيږی .په خلاف د مشتری .څكه چې د مشتری
لپاره دنفس بيع په وجه ملك نه مكمل كيږی .څكه چې په قبضه سره به دده لپاره ملك د تصرف مستفاد وی

وَلَا كَذٰلِكَ الْخَمْرُ او شراب داسې نه دی لِأَنَّهُ مِنْ ذَوَاتِ الْأَمْثَالِ څكه چې دغه دَ ذوات الامثال نه دی أَلَا تَرَى أَنَّهُ لَوْ
جَاءَ بِالْقِيْمَةِ، قَبْلَ الْإِسْلَامِ آيا ته نه ګورې چې كه خاوند دَ اسلام نه مخكې قيمت ادا كړی تُجْبَرُ عَلَى الْقَبُوْلِ فِي
الْخِنْزِيْرِ دُوْنَ الْخَمْرِ نو ښځه به دَ قيمت په اغستو مجبوروَلې شی دَ خنزير په صورت كي نه دَ شرابو په صورت
كې

تشریح:- امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائی .چه هرکله په مهرغیر معین کي د اسلام په وجه قبضه متعذر شوه.نود خنزیر په صورت کي به په خاوند باندې ددې قیمت واجب نه وی .بلکه مهرمثل به واجب وی .ځکه چې خنزیر د ذوات القیم څخه دې.نو ددې قیمت اخستل به عین خنزیر اخستل وی .اودا صحیح نه ده.په دې وجه به په دې صورت کي مهرمثل واجب وی .او شراب چونکه د ذوات الامثال څخه دی .په دې وجه ددې قیمت اخستل به عین شراب اخستل نه وی .په دې وجه د شرابو په صورت کي دښځې لپاره د شرابو قیمت واجب کړې شوې دې.او چونکه خنزیر د ذوات القیم څخه دې.هم په دې وجه که د اسلام نه وړاندې خاوند د خنزیر قیمت ورکول اوغواړی .نوښځه به ددې په اخستلو باندې مجبوروله شی .خود شرابو په صورت کي به نشي مجبوروليـ.ځکه چې شراب د ذوات القیم څخه نه دی .

وَلَوْ طَلَّقَهَا قَبْلَ الدُّخُولِ بِهَا اوکه ښځې ته ئې قبل الدخول طلاق ورکړل فَمَنْ أَوْجَبَ مَهْرَ الْمِثْلِ أَوْجَبَ الْمُتْعَةَ نو چا چې مهر مثل واجب کړې دې هغه به متعه واجبوی .وَمَنْ أَوْجَبَ الْقِيمَةَ أَوْجَبَ نِصْفَهَا، وَاللّٰهُ أَعْلَمُ او چا چې قیمت واجب کړې دې هغه به نیم قیمت واجبوی .

تشریح:- صاحب هدایه رحمه الله فرمائی .چه په پورته ذکر شوی صورت کي که خاوند ،طلاق قبل الدخول، ورکړو.نو چاچه مهرمثل واجب کړې وو.دهغوی په نیز به متعه واجب وی .اوچاچه قیمت واجب کړې وو.دهغوی په نیز به نصف قیمت واجب وی .والله اعلم بالصواب

## باب نكاح الرقيق

ژباړه:- (دا) باب د رقیق د اولیاو د نکاح (په بیان کښې) دې .

تشریح:- د رقیق(غلام) نکاح ئې د نصرانی او نصرانی د فصل نه موخر کړې دې.ځکه چې ،رق،د کفر د اثارو څخه دې.ځکه چې په پیل کي کافر رقیق جوړولې شی .مسلمان نشی جوړولې.او چونکه اثر د موثر نه روسته راځی .په دې وجه ئې د رقیق نکاح روسته بیان کړې ده.رقیق مملوک ته وائی .رقیق واحد جمع ټولو ته وئیلې شی .

### د غلام او وینځې نکاح لپاره د مولا اجازت

لَا يَجُوزُ نِكَاحُ الْعَبْدِ وَالْأَمَةِ إِلَّا بِإِذْنِ مَوْلَاهُمَا جائز نه دې دَ غلام او وینځې نکاح مګر دَ دوی دَ آقا په اجازت

تشریح:- د دې عبارت خوبومطلب دادې.چه بغیر د مولا د اذن نه دغلام اود وینځې نکاح نه منعقد کیږی .حافظ الدین هم ددې قائل دې.خوصحیح مطلب دادې.چه بغیر د اذن د مولانه د غلام اود وینځې نکاح جائز اوصحیح ده.خوغیر نافذ ده.ددې نفاذ به د مولا په اجازت باندې موقوف وی .که مولا اجازت ورکړو.نو نافذ به وی .اوکه اجازت ئې ورنکړو.نو نافذ به نه وی .دسعید ابن المسیب، حسن،او ابراهیم نخعی هم دا قول دې.

ځکه چې د وینځې د بضع منافع د مولا ملک دی .اود مولا په ملک کي دده د اجازت نه بغیر هیڅ چاته د تصرف حق نشته.نود مولا داجازت نه بغیر به د وینځې نکاح صحیح (نافذ) نه وی .

وَقَالَ مَالِكٌ رحمه الله: يَجُوزُ لِلْعَبْدِ او امام مالک رحمه الله فرمائی چې غلام لره جائز دې لِأَنَّهُ يَمْلِكُ الطَّلَاقَ فَيَمْلِكُ النِّكَاحَ ځکه چې دې مالک دَ طلاقو دې نو دَ نکاح به هم مالک وی

تشریح:- او پاتې شو غلام،نو په دې کي د امام مالک رحمه الله اختلاف دې.دې فرمائی .چه بغیر د اذن د مولا نه د غلام نکاح جائز(نافذ) ده.اود احنافو رحمهم الله په نیز د غلام نکاح بغیرد مولا د اذن نه جائز(نافذ) نه ده.د امام [illegible] [illegible]لیل دادې.چه غلام د طلاق مالک دې.اوڅوک چې د طلاق مالک وی .هغه به د نکاح هم مالک وی [illegible]لاق دنکاح د سبب په وجه دې.اوڅوک چې د کوم شی مالک وی .هغه ددې د سبب د،موصل



الیه، هم مالک وی .نوهرکله چې غلام د طلاق مالک دې. او طلاق رفع د نکاح ته وائی .اوکوم کس چې د څه شی د رفع مالک وی .هغه به د وضع د شئ هم مالک وی .نوغلام به دنکاح هم مالک وی.

وَلَنَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ { أَيُّمَا عَبْدٍ تَزَوَّجَ بِغَيْرِ إِذْنِ مَوْلَاهُ فَهُوَ عَاهِرٌ } (١) زموږ دلیل قول دَ نبی کریم ﷺ دې چې کوم غلام دَ خپل آقا دَ اجازت نه بغیر نکاح او کړو دَغه زانی دې

حل اللغة* ① عاهر: زناکار ② اذن: اجازت]

تشریح:- داحنافو رحمهم الله دلیل د حضرت جابر رضی الله عنه حدیث دې.چه کوم غلام د مولا د اجازت نه بغیر نکاح اوکړه.هغه زانی دې.ددې حدیث نه معلومیږی .چه د مولا داجازت نه بغیر نکاح درست(نافذ) نه ده.

وَلِأَنَّ فِي تَنْفِيذِ نِكَاحِهِمَا تَعْيِيبَهُمَا او ځکه چې دَ ده په نکاح نافذ کاوه کي دۀ لره معیوب جوړول دی إِذِ النِّكَاحُ عَيْبٌ فِيهِمَا ځکه چې نکاح په دې دواړو کي عیب دې فَلَا يَمْلِكَانِهِ بِدُونِ إِذْنِ مَوْلَاهُمَا نو دَ آقا دَ اجازت نه بغیر دَ دې نۀ مالکان کیږی

حل اللغة* ① تنفیذ: نافذ کول،صحیح کول ② تعییب: عیب داره کول ]

تشریح:- د دلیل عقلی حاصل دادې.چه د غلام اود وینځې په نکاح نافذ کولوکي دوی عیب داره کول دی .ځکه چې په غلام او وینځه کي نکاح عیب دې.(هم دا وجه ده.که یوکس غلام یاوینځه واخستله. بیا معلومه شوه.چه دا شادی شده(واده والا) دې.نومشتری لپاره د خیارعیب په وجه ددې د واپس کولوحق شته.اود غلام او وینځې لپاره دا اختیارنشته.چه دوی په خپل ځان کي عیب پیدا کړی .د مولا د حق خیال ساتلو په وجه.نودا د واړه به د مولا د اجازت نه بغیرد نکاح مالک نه وی .

ℹ︎د امام مالک رحمه الله د د لیل ځواب دادې.چه طلاق د عیب ازاله ده.او نکاح عیب داره جوړول دی . اود عیب د ازاله د مالک کیدلو سره دا نه لازمیږی .چه داکس د تعییب( عیب داره کولو)هم مالک وی .

### د مکاتب د نکاح لپاره د مولا اجازت

وَكَذَا الْمُكَاتَبُ او دغه ډول مکاتب دې لِأَنَّ الْكِتَابَةَ أَوْجَبَتْ فَكَّ الْحَجْرِ فِي حَقِّ الْكَسْبِ ځکه چې دَ کتابت عقد واجب کړې.دی دَ ممانعت لرې کول په حق دَ کسب کاوه کي فَبَقِيَ فِي حَقِّ النِّكَاحِ عَلَى حُكْمِ الرِّقِّ نو په حق دَ نکاح کي به دَرقیت په حکم باند پاته وی

حل اللغة* ① فک: آزادول ② الحجر: پابندی ،بندیز ③ الرق: خالصه غلامی ]

تشریح:- مسئله داده.چه د مکاتب نکاح د مولا د اجازت نه بغیر صحیح(نافذ) نه ده.حاصل د دلیل دادې.چه غلام د هرقسمه تصرف نه محجور(بند) وی .عقدکتابت دده حجر(ممانعت) کسب،یعنی د منافع حاصلولوپه حق کي باطل کړو.چه د کسب په ذریعه د حریت شرافت حاصل کړی .اونکاح یو داسې تصرف نه دې.چه په دې کي تحصیل د منافع وی .بلکه په ده کي به یو ډول ضرر ثابت شی .مثلاً مهر به لازم وی .او نفقه به واجب وی .

وَلِهَذَا لَا يَمْلِكُ الْمُكَاتَبُ تَزْوِيجَ عَبْدِهِ وَيَمْلِكُ تَزْوِيجَ أَمَتِهِ په دې وجه مکاتب دَ خپل غلام دَ نکاح مالک نه دې او دَ خپلې وینځې دَ نکاح مالک دې لِأَنَّهُ مِنْ بَابِ الِاكْتِسَابِ ځکه چې دا دَ باب دَ اکتساب نه ده

تشریح:- نومکاتب چې د نکاح په حق کي لکه څنګه مخکې رقیق وو.دغه ډول دمکاتب کیدلو نه روسته به هم رقیق وی .اوچونکه مکاتب د نکاح په حق کي رقیق دې.په دې وجه دې د خپل غلام د نکاح کاوه مجاز نه دې.ځکه چې د غلام نکاح د ګټې (منافع حاصلولو) د باب څخه نه ده.البته مکاتب دخپلې وینځې نکاح کولې شی .ځکه چې د وینځې نکاح د ګټې ذریعه ده.په دې طریقه چې ددې په وجه به مهر اونفقه حاصلیږی

١) من حدیث جابر رضی الله عنه أخرجه الترمذی فی النکاح باب ٢٠ رقم ١١١٢ وأبوداود فی النکاح باب ١٦ رقم ٢٠٧٨)ـ

تشریح:- امام ابوحنیفه ؒ فرمائی. چه هرکله په مهرغیر معین کي د اسلام په وجه قبضه متعذر شوه.نود خنزیر په صورت کي به په خاوند باندي ددي قیمت واجب نه وی .بلکه مهرمثل به واجب وی .ځکه چي خنزیر د ذوات القیم څني دي.نو ددي قیمت اخستل به عین خنزیر اخستل وی .اودا صحیح نه ده.په دي وجه به په دي صورت کي مهرمثل واجب وی .او شراب چونکه د ذوات الامثال څني دی .په دي وجه ددي قیمت اخستل به عین شراب اخستل نه وی .په دي وجه د شرابو په صورت کي دښځي لپاره د شرابو قیمت واجب کړي شوي دي.او چونکه خنزیر د ذوات القیم څني دي.هم په دي وجه که د اسلام نه وړاندي خاوند د خنزیر قیمت ورکول اوغواړي .نوښځه به ددي په اخستلو باندي مجبوروليږي شي .خود شرابو په صورت کي به نشی مجبوروليږي.ځکه چي شراب د ذوات القیم څني نه دی .

وَلَوْ طَلَّقَهَا قَبْلَ الدُّخُولِ بِهَا او که ښځي ته ئ قبل الدخول طلاق ورکړل فَمَنْ أَوْجَبَ مَهْرَ الْمِثْلِ أَوْجَبَ الْمُتْعَةَ نو چا چي مهر مثل واجب کړي دي هغه به متعه واجبوی .وَمَنْ أَوْجَبَ الْقِيمَةَ أَوْجَبَ نِصْفَهَا، وَاللَّهُ أَعْلَمُ او چا چي قیمت واجب کړي دي هغه به نیم قیمت واجبوی .

تشریح:- صاحب هدایه ؒ فرمائی. چه په پورته ذکر شوی صورت کي که خاوند ،طلاق قبل الدخول، ورکړو.نو چاچه مهرمثل واجب کړي وو.دهغوی په نیز به متعه واجب وی .اوچاچه قیمت واجب کړي وو.دهغوی په نیز به نصف قیمت واجب وی .والله اعلم بالصواب

## باب نكاح الرقيق

ژباړه:- (دا) باب د رقیق د اولیاو د نکاح (په بیان کښي) دي .

تشریح:- د رقیق(غلام) نکاح ئي د نصرانی او نصرانی د فصل نه مؤخر کړي دي.ځکه چي ،رق،د کفر د اثاروڅني دي.ځکه چي په پیل کي کافر رقیق جوړولي شی .مسلمان نشی جوړولي.او چونکه اثر د مؤثر نه روسته راځی .په دي وجه ئي د رقیق نکاح روسته بیان کړي ده.رقیق مملوك ته وائی .رقیق واحد جمع ټولو ته ونیلي شی .

### د غلام او وینځي نکاح لپاره د مولا اجازت

لَا يَجُوزُ نِكَاحُ الْعَبْدِ وَالْأَمَةِ إِلَّا بِإِذْنِ مَوْلَاهُمَا جائز نه دي د غلام او وینځي نکاح مګر د دوی د آقا په اجازت

تشریح:- د دي عبارت خویومطلب دادي.چه بغیر د مولا د اذن نه دغلام اود وینځي نکاح نه منعقد کیږي .حافظ الدین هم ددي قائل دي.خوصحیح مطلب دادي.چه بغیر د اذن د مولانه د غلام اود وینځي نکاح جائز اوصحیح ده.خوغیر نافذ ده.ددي نفاذ به د مولا په اجازت باندي موقوف وی .که مولا اجازت ورکړو.نو نافذ به وی .اوکه اجازت ئي ورنکړو.نو نافذ به نه وی .دسعید ابن المسیب، حسن،او ابراهیم نخعی هم دا قول دي.

ځکه چي د وینځي د بضع منافع د مولا ملك دی .اود مولا په ملك کي دده د اجازت نه بغیر هیڅ چاته د تصرف حق نشته.نود مولا داجازت نه بغیر به د وینځي نکاح صحیح (نافذ) نه وی .

وَقَالَ مَالِكٌ ؒ: يَجُوزُ لِلْعَبْدِ او امام مالك ؒ فرمائی چي غلام لره جائز دي لِأَنَّهُ يَمْلِكُ الطَّلَاقَ فَيَمْلِكُ النِّكَاحَ ځکه چي دي مالك د طلاقو دي نو د نکاح به هم مالك وی

تشریح:- او پاتي شو غلام،نو په دي کي د امام مالك ؒ اختلاف دي.دي فرمائی .چه بغیر د اذن د مولا نه د غلام نکاح جائز(نافذ) ده.اود احنافو ؒ په نیز د غلام نکاح بغیرد مولا د اذن نه جائز(نافذ) نه ده.د امام مالك ؒ دلیل دادي.چه غلام د طلاق مالك دي.اوڅوك چي د طلاق مالك وی .هغه به د نکاح هم مالك وی.ځکه چي طلاق دنکاح د سبب په وجه دي.اوڅوك چي د کوم شی مالك وی .هغه ددي د سبب د،موصل



الیه، هم مالك وی .نوهرکله چي غلام د طلاق مالك دي. او طلاق رفع د نکاح ته وائی .اوکوم کس چي د څه شی د رفع مالك وی .هغه به د وضع د شئ هم مالك وی . نوغلام به دنکاح هم مالك وی.

وَلَنَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {أَيُّمَا عَبْدٍ تَزَوَّجَ بِغَيْرِ إِذْنِ مَوْلَاهُ فَهُوَ عَاهِرٌ} (۱) زموږ دلیل قول د نبی کریم ﷺ دي چي کوم غلام د خپل آقا د اجازت نه بغیر نکاح او کړو د هغه زانی دي

حل اللغة: ① عاهر: زناکار ② اذن: اجازت]

تشریح:- داحنافو ؒ دلیل د حضرت جابر ؓ حدیث دي.چه کوم غلام د مولا د اجازت نه بغیر نکاح اوکړه.هغه زانی دي.ددي حدیث نه معلومیږي .چه د مولا داجازت نه بغیر نکاح درست(نافذ) نه ده.

وَلِأَنَّ فِي تَنْفِيذِ نِكَاحِهِمَا تَعْيِيبَهُمَا او ځکه چي د ده په نکاح نافذ کاوه کي ده لره معیوب جوړول دی إِذِ النِّكَاحُ عَيْبٌ فِيهِمَا ځکه چي نکاح په دي دواړو کي عیب دي فَلَا يَمْلِكَانِهِ بِدُونِ إِذْنِ مَوْلَاهُمَا نو د آقا د اجازت نه بغیر د دي نه مالکان کیږي

حل اللغة: ① تنفيذ: نافذ کول،صحیح کول ② تعييب: عیب داره کول ]

تشریح:- د دلیل عقلی حاصل دادي.چه د غلام اود وینځي په نکاح نافذ کولوکي دوی عیب داره کول دی . ځکه چي په غلام او وینځه کي نکاح عیب دي.(هم دا وجه ده.که یوکس غلام یاوینځه واخستله .بیا معلومه شوه.چه دا شادی شده(واده والا) دي.نومشتری لپاره د خیارعیب په وجه ددي د واپس کولوحق شته.اود غلام او وینځي لپاره دا اختیارنشته.چه دوی په خپل ځان کي عیب پیدا کړي .د مولا د حق خیال ساتلو په وجه.نودا د واړه به د مولا د اجازت نه بغیرد نکاح مالك نه وی .

د امام مالك ؒ د دلیل ځواب دادي.چه طلاق د عیب ازاله ده.او نکاح عیب داره جوړول دی . اود عیب د ازاله د مالك کیدلو سره دا نه لازمیږي .چه داکس د تعییب(عیب داره کولو)هم مالك وی .

### د مکاتب د نکاح لپاره د مولا اجازت

وَكَذَا الْمُكَاتَبُ او دغه ډول مکاتب دي لِأَنَّ الْكِتَابَةَ أَوْجَبَتْ فَكَّ الْحَجْرِ فِي حَقِّ الْكَسْبِ ځکه چي د کتابت عقد واجب کړی.دی د ممانعت لري کول په حق د کسب کاوه کي فَيَبْقَى فِي حَقِّ النِّكَاحِ عَلَى حُكْمِ الرِّقِّ نو په حق د نکاح کي به د رقیت په حکم باند پاته وی

حل اللغة: ① فک: آزادول ② الحجر: پابندی ،بندیز ③ الرق: خالصه غلامی ]

تشریح:- مسئله داده.چه د مکاتب نکاح د مولا د اجازت نه بغیر صحیح(نافذ) نه ده.حاصل د دلیل دادي.چه غلام د هرقسمه تصرف نه محجور(بند) وی .عقدکتابت دده حجر(ممانعت) کسب،یعنی د منافع حاصلولوپه حق کي باطل کړو.چه د کسب په ذریعه د حریت شرافت حاصل کړی .اونکاح یو داسي تصرف نه دي.چه په دي کي تحصیل د منافع وی .بلکه په ده کي به یو ډول ضرر ثابت شی .مثلاً مهر به لازم وی .او نفقه به واجب وی .

وَهَذَا لَا يَمْلِكُ الْمُكَاتَبُ تَزْوِيجَ عَبْدِهِ وَيَمْلِكُ تَزْوِيجَ أَمَتِهِ په دي وجه مکاتب د خپل غلام د نکاح مالك نه دي او د خپلي وینځي د نکاح مالك دي لِأَنَّهُ مِنْ بَابِ الِاكْتِسَابِ ځکه چي دا د باب د اکتساب نه ده

تشریح:- نومکاتب چي د نکاح په حق کي لکه څنګه مخکي رقیق وو.دغه ډول دمکاتب کیدلو نه روسته به هم رقیق وی .اوچونکه مکاتب د نکاح په حق کي رقیق دي.په دي وجه دي د خپل غلام د نکاح کاوه مجاز نه دي.ځکه چي د غلام نکاح د ګټي (منافع حاصلولو) د باب څني نه ده.البته مکاتب دخپلي وینځي نکاح کولي شی .ځکه چي د وینځي نکاح د ګټي ذریعه ده.په دي طریقه چي ددي په وجه به مهر اونفقه حاصلیږي

۱) من حدیث جابر ؓ أخرجه الترمذی فی النکاح باب ۲۰ رقم ۱۱۱۲ وأبوداود فی النکاح باب ۱۶ رقم ۲۰۷۸)_

.څکه چې کوم مهر د عقد یا د دخول په وجه د وینځې لپاره واجب شوي دي.هغه به د مولا د پاره وي.

وَكَذَا الْمُكَاتَبَةُ لَاتَمْلِكُ تَزْوِيجَ نَفْسِهَا بِدُونِ إِذْنِ الْمَوْلَى دغه ډول مکاتبه مالکه نه ده دَ خپل ځان په نکاح ور کاوه بغیر دَ اجازت دَ آقا نه وَتَمْلِكُ تَزْوِيجَ أَمَتِهَا لِمَا بَيَّنَّا او دَ خپلې وینځې دَ نکاح مالکه ده لکه چې مونږ بیان کړل كَذَا الْمُدَبَّرَةُ وَأُمُّ الْوَلَدِ او دَغسې مدبر او ام ولده ده لِأَنَّ الْمِلْكَ فِيهِمَا قَائِمٌ څکه چې ملك په دې دواړو کې قائم دې

تشریح:- هم دا حکم د مکاتبه وینځې دې.چه دخپلې وینځې نکاح کولې شي .خو خپله نکاح د مولا د اجازت نه بغیر نشي کولې.د تیرشوی دلیل په وجه.دغه ډول مدبر او ام ولد ، بغیرد مولا د اجازت نه دنکاح مجاز نه دی . څکه چې ملك په دواړو کې موجود دې.هم دا وجه ده.که مولا اوونیل.[کل مملوك لي حر]نو مدبر او ام ولد به دواړه آزاد وي .

## د مولا په اجازت د غلام په نکاح سره د مهر وجوب

وَإِذَا تَزَوَّجَ الْعَبْدُ بِإِذْنِ مَوْلَاهُ هر کله چې نکاح او کړو غلام دَ خپل آقا په اجازت سره فَالْمَهْرُ دَيْنٌ فِي رَقَبَتِهِ يُبَاعُ فِيهِ نو مهر به د غلام په رقبه کې دَین وي په کوم کې چې به دې خرڅولې شي

تشریح:- صورت د مسئلې دادې.که غلام د مولا په اجازت سره نکاح اوکړه.نومهر به په غلام باندې واجب وی .اوددې مهر ادا کاوه لپاره به غلام خرڅولې شي .البته که ددې غلام په پوره ثمن سره پوره مهر ادانشو.نو دوباره به نشي خرڅولې.بلکه د پاته مهرمطالبه به د آزادیدلو نه روسته کولې شي .

لِأَنَّ هَذَا دَيْنٌ وَجَبَ فِي رَقَبَةِ الْعَبْدِ لِوُجُودِ سَبَبِهِ مِنْ أَهْلِهِ څکه چې دا دین دَ غلام په رقبه کې واجب شوي دي دَ سبب دَ دین موندو په وجه دَ دهٔ دَ اهل نه وَقَدْ ظَهَرَ فِي حَقِّ الْمَوْلَى لِصُدُورِ الْإِذْنِ مِنْ جِهَتِهِ او دَ دې سبب ظهوراو شو دَ آقا په حق کې دَ ده دَ اړخ نه دَ اجازت صادریدو په بنا فَيَتَعَلَّقُ بِرَقَبَتِهِ دَفْعًا لِلْمَضَرَّةِ عَنْ أَصْحَابِ الدُّيُونِ كَمَا فِي دَيْنِ التِّجَارَةِ. نو دا دین به په رقبه دَ عبد پورې متعلق وی دَ قرضخواهانو نه دَ ضرر لرې کاوه په وجه لکه چې په دین دَ تجارت کې

حل اللغة: ① المضرة: ضرر، تکلیف ② صدور: ښکاره کیدل ③ اصحاب الدیون: قرضخواهان ]

تشریح:- د دلیل حاصل دادې.چه دمهر دین واجب شوي دي.د غلام په رقبه باندې،او هرهغه دین چې د غلام په رقبه باندې واجب وی .غلام به په هغه دین کې خرڅولې شي .نودا غلام به هم د مهر دین ادا کاوه لپاره خرڅولې شي .اود نفس وجوب دلیل دادې.چه سبب د وجوب،یعنی نکاح د اهل (عاقل،بالغ) نه صادر شوې ده.اومانع د نکاح یعنی حق د مولا دده په اجازت سره منتفي شو.اود غلام په رقبه کې د واجبیدلو په وجه د مولا اجازت ورکول،د اصحاب دیون(قرضخواه)یعنی ښځې نه ضرر لرې کول دی .لکه څنګه چې د تجارت په دیون کې عبدماذون خرڅولې شي .دغه ډول د ښځې مهر ادا کاوه لپاره به هم غلام خرڅولې شي .

وَالْمُدَبَّرُ وَالْمُكَاتَبُ يَسْعَيَانِ فِي الْمَهْرِ او مدبر او مکاتب به کوښښ کوی دَ مهر په ادائیګی کې وَلَا يُبَاعَانِ فِيهِ او دوی لره به په دې کې نهٔ شي خر څولې لِأَنَّهُمَا لَا يَحْتَمِلَانِ النَّقْلَ مِنْ مِلْكٍ إِلَى مِلْكٍ مَعَ بَقَاءِ الْكِتَابَةِ وَالتَّدْبِيرِ. څکه چې دوی احتمال نه لری دَ یو ملك نه بل ملك ته دَ نقل کیدو سره دَ بقاء دَ کتابت او دَ تدبر نه فَيُؤَدَّى مِنْ كَسْبِهِمَا لَا مِنْ نَفْسِهِمَا نو مهر به دَ دوی دَ کسب نه ادا کولای شي نه چې دَ دوی دَ نفسونو نه .

تشریح:- البته مدبر اومکاتب که د مولا په اجازت سره نکاح اوکړه.نودوی دواړه به ګټه کوی .اومهر به ادا کوی . دوی به نشي خرڅولې.دلیل دادې.چه مدبر اومکاتب د تدبیر اوکتابت د بقاء باوجود د یوملك نه بل ملك ته منتقل کول صحیح نه دی .نوهرکله چې دا دواړه د ملك د انتقال احتمال نه لری .نودا به خرڅولې هم نشي .حاصل دا چې د مدبر اومکاتب د رقبه نه مهر وصولول متعذر دی .نودا دواړه به ګټه کوی .او مهر به ادا کوی .



## د مولا د اجازت نه بغیر د غلام نکاح کول

وَإِذَا تَزَوَّجَ الْعَبْدُ بِغَيْرِ إِذْنِ مَوْلَاهُ هر کله چې نکاح او کړو غلام دَ خپل آقا دَ اجازت نه بغیر فَقَالَ الْمَوْلَى طَلِّقْهَا أَوْ فَارِقْهَا نو آقا ورته او ونیل چې دا طلاقه کړه یا ئې جداکړه فَلَيْسَ هَذَا بِإِجَازَةٍ نو دا اجازت نه دې لِأَنَّهُ يَحْتَمِلُ الرَّدَّ څکه چې دا دَ رد احتمال لری لِأَنَّ رَدَّ هَذَا الْعَقْدِ وَمُتَارَكَتَهُ يُسَمَّى طَلَاقًا وَمُفَارَقَةً څکه چې دَ دې عقد رد او متارکت ته په طلاقو سره مسمی کولای شي وَهُوَ أَلْيَقُ بِحَالِ الْعَبْدِ الْمُتَمَرِّدِ أَوْ هُوَ أَدْنَى او چې دا مناسب حال دې دَ نا فرمان غلام دَ حال سره یا دَغه ادنی دې فَكَانَ الْحَمْلُ عَلَيْهِ أَوْلَى نو حمل کول به په دې اولی وي

حل اللغة: ① المتمرد: سرکشته، نافرمانه ② الیق: زیات لائق دې ③ مفاقة: جدائی ]

تشریح:- صورت دمسئلې دادې.چه غلام بغیر دمولا د اجازت نه نکاح اوکړه.د معلومیدلو نه روسته مولا غلام ته اوونیل.[طلقها یا فارقها] نودا به د مولا د اړخه د نکاح اجازت نه وی .دلیل دادې.چه د مولا په دې کلام کې چې لکه څنګه د نکاح احتمال شته.دغه ډول د نکاح د رد کاوه احتمال هم شته.څکه چې د فاسد نکاح رد کولو،او ترك کولونوم طلاق او مفارقت دې.نو هرکله چې د دواړه ځیزونو احتمال شته.نومونږ د اجازت په اړخ باندې د رد اړخ ته په دوې [دوه] وجه ترجیح ورکړه.اول داچه غلام سرکښه (سرکشه) اونافرمانه دې.اود نافرمانه او سرکښه مناسب هم دادی .چه دده شوې عمل رد اوباطل کړې شي .نه داچه نافذ کړې شي . دوهم داچه رد کول ادنی دی .څکه چې ردکول دفع کول دی .او طلاق د نکاح د ثبوت نه روسته دفع کول دی .او دفع آسان ده.د رفع نه.نوپه دفع یعنی رد کاوه باندې به محمول کول غوره اومناسب وی .اوکه څوك اشکال اوکړی .چه لفظ د ،طلقها، په طلاق واقع کولوکې حقیقت دې.اود متارکت او رد کاوه په معنی کې مجاز دې.او په حقیقت باندې عمل کول هم ممکن دی .نو بیا مجاز اړخ ته ولې رجوع شوې ده.ځواب به دا وی .چه حقیقت د دلالت حال په وجه پریخودلې شي .او دلته کې هم دغه خبره ده

وَإِنْ قَالَ: طَلِّقْهَا تَطْلِيقَةً تَمْلِكُ الرَّجْعَةَ او که اوئ ونیل چې دې لره داسې طلاق ورکړه چې تاته دَ رجعت حق حاصل وی فَهُوَ إِجَازَةٌ نو دا اجازت دې لِأَنَّ الطَّلَاقَ الرَّجْعِيَّ لَا يَكُونُ إِلَّا فِي نِكَاحٍ صَحِيحٍ. څکه چې رجعی طلاق نه وی مګر په نکاح صحیح کې فَتَتَعَيَّنُ الْإِجَازَةُ نو اجازت متعین شو .

تشریح:- او که مولا اوونیل.چه [طلقها تطليقة تملك الرجعة] نودا قول به د مولا د اړخه اجازت وی .دلیل دا ئې چه مولا غلام ته حکم ورکړې دې.چه دې طلاق رجعی ورکړې .اوطلاق رجعی د صحیح نکاح نه روسته وی .نود مولا د طلاق رجعی حکم ورکول،ګویا د نکاح صحیح اجازت ورکول دی .

## د مولا په حکم باندې د غلام وینځې سره نکاح فاسد کول

وَمَنْ قَالَ لِعَبْدِهِ تَزَوَّجْ هَذِهِ الْأَمَةَ چا او وې خپل غلام ته چې دَ دې وینځې سره نکاح او کړه فَتَزَوَّجَهَا نِكَاحًا فَاسِدًا وَدَخَلَ بِهَا نو دهٔ ورسره فاسد نکاح او کړو او دَخول ئې ورسره هم او کړو فَإِنَّهُ يُبَاعُ فِي الْمَهْرِ نو دې به په مهر کې خرڅولې شي عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ ([1]) په نزد دَ امام ابوحنیفه رحمه الله

تشریح:-صورت د مسئلې دادې.چه مولا خپل غلام ته د[تزوج هذه الأمة] په الفاظوسره د نکاح اجازت ورکړو.غلام دې وینځې سره نکاح فاسد اوکړه.او دخول ئې هم اوکړو.نود امام صاحب رحمه الله په نیز به د مهر ادا کاوه لپاره دا غلام خرڅولې شي .

وَقَالَا: يُؤْخَذُ مِنْهُ إِذَا عَتَقَ او صاحبین رحمهما الله وائی اغستې به شي دَ دهٔ نه کله چې آزاد شي

[1]) القول الراجح هو قول أبی حنیفة رحمه الله کذا فی فتح القدیر(٣\٢٦٨) والدرالمختار(٢\٤٠٦) والهندیة (١\٣٣٢) والبحر(٣\٣٣٩) نقلاً عن القول الراجح (١١\٢٩٠)_

تشریح:- صاحبين ﷫ فرمائی .چه غلام به دمهر په سلسله کي نشی خرڅولی.بلکه دازادیدلو نه روسته به د غلام نه مهروصولولي شي .

وَأَصْلُهُ أَنَّ الْإِذْنَ بِالنِّكَاحِ يَنْتَظِمُ الْفَاسِدَ وَالْجَائِزَ عِنْدَهُ او اصل د دي دا دې چې اجازت په نكاح کي ګډ وی فاسد او جائز دواړو لره د امام ابوحنيفه رحمه الله په نزد فَيَكُونُ هٰذَا الْمَهْرُ ظَاهِرًا فِي حَقِّ الْمَوْلَىٰ نو دا مهر به ظاهر وی د آقا په حق کي وَعِنْدَهُمَا يَنْصَرِفُ إِلَى الْجَائِزِ لَا غَيْرُ او د صاحبينو ﷫ په نزد به د آزادی نه نو وی فَلَا يَكُونُ ظَاهِرًا فِي حَقِّ الْمَوْلَىٰ فَيُؤَاخَذُ بِهِ بَعْدَ الْعَتَاقِ،

تشریح:- د اختلاف بنا (بنیاد) دادې.چه د امام صاحب رحمه الله په نیز د نكاح اجازت نكاح صحيح اونكاح فاسد دواړو ته شامليږی .اود صاحبينو ﷫ په نيز صرف نكاح صحيح ته شامليږی .نوچونکه نكاح فاسد د امام صاحب رحمه الله په نيزد مولا په اجازت سره ده.نومهر به د مولا په حق کي ښکاره کیږی .اوغلام بـه خرڅولي شی . اوچونکـه د صاحبينو ﷫ پـه نيزنكـاح فاسـد د مـولا پـه اجازت سره نه ده.نومهربه هم د مولا په حق کي نه ښكاره کیږی .بلکه د غلام د آزادیدلو نه روسته به دده نه مهر وصولولي شی .

لَهُمَا أَنَّ الْمَقْصُودَ مِنَ النِّكَاحِ فِي الْمُسْتَقْبَلِ الْإِعْفَافُ وَالتَّحْصِينُ د صاحبينو ﷫ دليل دا دې چې د نكاح مقصد په آئنده زمانه کي تحصيل د عفت او نفس د حرامو نه بچ کول دی وَذٰلِكَ بِالْجَائِزِ او دا په جائز نكاح سره كيداې شی وَلِهٰذَا لَوْ حَلَفَ لَا يَتَزَوَّجُ دا وجه ده چې كه چا قسم او كړو چې نكاح به او نه كړی يَنْصَرِفُ إِلَى الْجَائِزِ دا قسم به نكاح جائز ارخ ته منصرف وی بِخِلَافِ الْبَيْعِ په خلاف د بيع نه لِأَنَّ بَعْضَ الْمَقَاصِدِ حَاصِلٌ ځكه چې په بيع فاسدې سره بعض مقاصد حاصل دی وَهُوَ مِلْكُ التَّصَرُّفَاتِ او هغه مالك كيدل د تصرفاتو دی

حل اللغة* ① الاعفاف:پاکدامنی حاصلول،② التحصين:نفس د زنا نه بچ کول]

تشریح:-د صاحبينو ﷫ دليل دادې.چه د نكاح مقصود عفت اوپاکدامنی حاصلول دی .اونفس د حرام فعل نه بچ کول دی .اودا مقصود په نكاح صحيح سره حاصليږی .ځكه چې د نكاح فاسد په صورت کي وطی کول حرام دی .نود مولا د اړخه به د نكاح اجازت نكاح صحيح ته ګډ وی .نكاح فاسد ته به ګډ نه وی .هم دا وجه ده.كه يو كس قسم اوخوړلو.چه نكاح به نه كوم.نودا قسم به نكاح صحيح ته ګډ وی .د نكاح فاسد په وجه به حانث نه وی .خوكه مولا خپل غلام ته د بيع اجازت وركړو.نودا اجازت به بيع صحيح اوبيع فاسد دواړو ته ګډ وی .ځكه چې د بيع بعض مقاصد په بيع فاسد سره هم حاصليږی .مثلاً د تصرفاتو مالك كيدل,لكه اعتاق اوهبه.

وَلَهُ أَنَّ اللَّفْظَ مُطْلَقٌ فَيَجْرِي عَلَىٰ إِطْلَاقِهِ كَمَا فِي الْبَيْعِ د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې چې لفظ مطلق دې نو دا به پخپل اطلاق جاری كیږی لكه په بيع کي وَبَعْضُ الْمَقَاصِدِ فِي النِّكَاحِ الْفَاسِدِ حَاصِلٌ كَالنَّسَبِ، وَوُجُوبِ الْمَهْرِ وَالْعِدَّةِ عَلَىٰ اعْتِبَارِ وُجُودِ الْوَطْيِ او بعض مقاصد په نكاح فاسد کي هم حاصل دی لكه د نسب او وجوب د مهر او د عدت د وجود د وطی په اعتبار سره

تشریح:- د امام صاحب رحمه الله د دليل حاصل دادې.چه لفظ د ،تزوج،مطلق دې.اوقاعده ده.چه كله مطلق اوونيلی شی .نودا په خپل اطلاق باندې جاری كیږی .نودا مطلق لفظ به هم په خپل اطلاق باندې جاری كولې شی .اوددې حكم به نكاح صحيح اونكاح فاسد دواړو ته عام وی .لكه ځنګه چې امر بالبيع، بيع صحيح اوبيع فاسد دواړو ته شامليږی .اود صاحبينو ﷫ دا ونيل،چه په بيع فاسد سره بعض مقاصد حاصليږی .موږ خواب وركوو.چه په نكاح فاسد سره هم بعض مقاصد حاصليږی .مثلاً كه ماشوم پيدا شی .نود پلارنه به دده دنسب ثبوت كیږی .په واطی به مهرواجب وی .اوكه وطی اوكړې شوه.نوعدت به واجب وی .



وَمَسْأَلَةُ الْيَمِينِ مَمْنُوعَةٌ عَلَىٰ هٰذِهِ الطَّرِيقَةِ او د يمين مسله ممنوع ده په دې طريقه باندې

تشریح:- دا عبارت د صاحبينو ﷫ د قياس ځواب دې.حاصل د ځواب دادې.چه موږ دا نه منو.چه ځوك د نكاح نه كولوقسم اوكړی .نودا قسم به نكاح صحيح ته ګډ وی .نكاح فاسد ته به ګډ نه وی .بلكه صحيح خبره داده.چه دا قسم دواړو ته ګډ دې.لكه ځنګه چې په نكاح صحيح سره حانث كیږی .دغه ډول به په نكاح فاسد سره هم حانث كیږی .اوكه د لږ وخت لپاره اومنلې شی .چه دا قسم نكاح صحيح ته ګډ دې.نكاح فاسد ته ګډ نه دې.نود امام صاحب رحمه الله د اړخه به ځواب داوی .چه نكاح په قسم باندې قياس كول,قياس مع الفارق دې.ځكه چې د قسم مدار په عرف اوپه رواج باندې دې.ددې په خلاف نكاح ده.چه ددې مدار په عرف باندې نه دې.نودا قياس هم صحيح نه دې.

### د قرضدار،ماذون له التجارة ،يوې ښځې سره نكاح كولوكې د مهرمسئله

وَمَنْ زَوَّجَ عَبْدًا مَأْذُونًا لَهُ مَدْيُونًا امْرَأَةً جَازَ چا چې د غلام مقروض ماذون فی التجارة نكاح او كړو د يوې ښځې سره نو دا جائز دې وَالْمَرْأَةُ أُسْوَةٌ لِلْغُرَمَاءِ فِي مَهْرِهَا اوس به ښځه برابره شريكه وی د قرضخواهانو سره د خپل مهر په اړه كي وَمَعْنَاهُ إِذَا كَانَ النِّكَاحُ بِمَهْرِ الْمِثْلِ ددې مطلب دا دې چې هر كله نكاح په عوض د مهر مثل وی

حل اللغة* ① اسوة:برابره شريكه ده ② الغرماء: جمع د غريم ،قرضخواه]

تشریح:- صورت دمسئلې دادې.چه مولا د خپل قرضدار،ماذون له التجارة، غلام د يوې ښځې سره د مهرمثل په عوض باندې نكاح اوكړله.نودا نكاح جائز ده.اوښځه به د خپل مهرپه اړه كي د نورو پور غوښتونكو سره برابره شريكه وی .مثلاً غلام په دوې [دوه] زره روپۍ باندې خرڅ كړې شو.او درې پور خواه (غوښتونكی ) دی .چه په دوی كي د هر يو پور زر زر روپۍ دی .اوڅلورمه ښځه ده،چه مهر ئې زر روپۍ دی .نو په دې څلوركسانو كي به هر يو(دغلام) د څلورمې برخې د قيمت،يعنی د پنځه سوه روپو مستحق وی .اود پاتـه پور مطالبه د غلام د آزاد كيدلو نه روسته كولې شی .

وَوَجْهُهُ أَنَّ سَبَبَ وِلَايَةِ الْمَوْلَىٰ مِلْكُهُ الرَّقَبَةَ عَلَىٰ مَا نَذْكُرُهُ او د دې وجه دا ده چې د آقا د ولايت سبب د ده ملكيت رقبه دې لكه چې موږ به ذكر كړو

تشریح:-دليل ددې خبرې چې ښځه به د نورو پور غوښتونكو سره برابره شريكه وی .دادې.چه مقتضی د مهر ،يعنی ولايت د مولا موجود دې.او ولايت د مولا ځكه موجود دې.چه ددې سبب متحقق دې. يعنی د غلام د سټ مالك كيدل.نو هركله چې مولا دده نكاح اوكړله.نوګويا په دې غلام باندې مهر لازم شو.نو مهر به د مولا په حق كي ښكاره كیږی .

وَالنِّكَاحُ لَا يُلَاقِي حَقَّ الْغُرَمَاءِ بِالْإِبْطَالِ مَقْصُودًا، إِلَّا أَنَّهُ إِذَا صَحَّ النِّكَاحُ او نكاح متصل نه شو د پور خواهانو د حق سره د قصداً باطلولو په طور إلا أنه إذا صح النكاح مګر دا چې هر كله نكاح صحيح شو وَجَبَ الدَّيْنُ بِسَبَبٍ لَا مَرَدَّ لَهُ نو دَين په داسې سبب سره واجب شو كوم لره چې نه شی رد كولې

تشریح:- دا عبارت د يو اعتراض ځواب دې.حاصل داعتراض دادې.چه مولا دغلام نكاح اوكړله. نو د پور غوښتونكوحقونه ئې باطل كړل.اود بل حق باطلول صحيح نه دی .نو ښځه د پور غوښتونكو سره برابره شريكول نه دی پكار؟ځواب•نكاح د پور غوښتونكو حقونوسره داسې نه ده متصل شوې.چه ددوی د حقونو باطلولو قصد كړې شوې وی .ځكه چې د نكاح محل آدميت(سړې كيدل) دی .اود پور غوښتونكو حق متصل دې د مال سره.زيات نه زيات دا ونيلی شی .چه د پور غوښتونكوحق بغير د قصده ضمناً باطل شوې دې.خودا معتبره نه ده.حاصل د دليل دادې.چه كله مقتضی متحقق شوه.اومانع منتفی شو.نو حكم به ثابت وی .

فَشَابَهَ دَيْنَ الْاِسْتِهْلَاكِ نو دَین دَ مهر دَ دین دَ استهلاك مشابه شو وَصَارَ كَالْمَرِيضِ الْمَدْيُونِ اِذَا تَزَوَّجَ امْرَأَةً فَتُهُوْ مِثْلُهَا اُسْوَةٌ لِلْغُرَمَاءِ او داسې شوه لكه مقروض مريض چې هر كله دَ ښځې سره واده اوكړى چې ښځه پخپل مهر مثل كې به دَ پور خواهانو سره دَ برابر شريكه وى .

تشريح: بهرحال هركله چې نكاح درست ده.نو دين د مهر په داسې سبب سره واجب شو.چه دا رفع كيدلې نشي .نودا دين د مهرد استهلاك د دين سره مشابه شو.يعنى ،عبد مديون ماذون له التجارة، د يوكس مال هلاك كړو.نوصاحب د مال به پور غوښتونكو سره برابرشريك وى .دغه ډول دا ښځه به هم په خپل مهرمثل كې د پور غوښتونكوسره برابره حقداره وى .اودا ،عبد مديون ماذون له، دهغه بيمار مديون پشان شو. چې ده د بيمارئ په حالت كې د يوې ښځې سره نكاح اوكړله.نولكه څنګه چې د بيمار ښځه په خپل مهرمثل كې د پور غوښتونكوسره برابره شريكه وى .دغه ډول به د ،عبد مديون ماذون له،ښځه هم د پور غوښتونكو سره په خپل مهرمثل كې برابره شريكه وى .

## د وينځې د نكاح نه روسته د مولا دخدمت حق

وَمَنْ زَوَّجَ اَمَتَهُ چا دَ خپلې وينځې نكاح او كړو فَلَيْسَ عَلَيْهِ اَنْ يُبَوِّئَهَا بَيْتَ الزَّوْجِ نو په دهٔ لازم نه دى چې ميشته كړي دي لره دَ خاوند په كور كې لٰكِنَّهَا تَخْدِمُ الْمَوْلٰى ليكن وينځه به دَ خپل آقا خدمت كوى وَيُقَالُ لِلزَّوْجِ مَتٰى ظَفِرْتَ بِهَا وَطِئْتَهَا او خاوند ته به ئې ونيلې شى چې كله تهٔ په دې قابومومې وطى كوه ئې

حل اللغة: ① يبوا:اوسوى ،ستوګنه وركوى ② ظفرت:كامياب شوې ته ،چه موقع درته ملاويده]

تشريح:- د ،تبوية، معنى داده.چه وينځه خاوند ته حواله كړې شى .اومولا د وينځې نه خدمت اخستل پريږدى . كه وينځه خاوند له خى راخى .اود مولا خدمت هم كوى .نودا به تبويه نه وى .

اًصورت د مسئلې دادې.چه مولا د خپلې وينځې د يوكس سره نكاح اوكړله.نوپه مولا باندې وينځه ددې د خاوند په كوركې اوسول،اوخپل دخدمت حق پريښول واجب نه دى .بلكه وينځه به د مولا خدمت كوى .او خاوند ته به ونيلى شى .چه كله تاته موقع په لاس راخى .نو وينځې سره وطى كوه.

لِاَنَّ حَقَّ الْمَوْلٰى فِى الْاِسْتِخْدَامِ بَاقٍ وَالتَّبْوِئَةُ اِبْطَالٌ لَهُ څكه چې دَ آقاحق دَ استخدام پاته دې اوټكانړه وركول دې حق لره باطلول دى

تشريح:-دليل دادې.چه په خدمت اخستلوكې دمولا حق پاته دې.دنكاح په اجازت وركولوسره د مولاحق نه ختميږى .اود خاوند په كور كې وينځه آبادولوسره د مولاحق باطلول دى .نو ددې تبويه په صورت كې د ادنى حق په وجه، د اعلى حق باطلول لازميږى .اودا صحيح نه ده.نو په مولا باندې به تبويه هم واجب نه وى .

فَاِنْ بَوَّأَهَا مَعَهُ بَيْتًا بيا كه آقا وينځه دَ خاوند په كور كې ميشته كړه فَلَهَا النَّفَقَةُ وَالسُّكْنٰى وَاِلَّا فَلَا نو دَ وينځې دَ پاره به نفقه اوسكنى وى ورنه نه به وى لِاَنَّ النَّفَقَةَ تُقَابِلُ الْاِحْتِبَاسَ څكه چې نفقه دَ احتباس په مقابله كې ده

حل اللغة: ① السكنى:استوګنه ② الاحتباس:بنديز]

تشريح:- البته كه مولا وينځه د خاوند سره په يوكور كې آباده كړله.يعنى دشپې ئې په خانله يوكوركې د اوسيدلواجازت وركړو.نوپه دې صورت كې به د وينځې لپاره په خاوند باندې نفقه اوسكنى واجب وى. اوكه مولا د خاوند سره د خانله اوسيدلواجازت ورنكړو.نو په خاوند باندې به سكنى اونفقه واجب نه وى .دليل دادې.چه نفقه د احتباس مقابل دې.نوكه مولاد خپل خدمت لپاره خان سره اوساتله.نو نفقه به په مولا باندې لازم وى .په خاوند به لازم نه وى .او كه د خاوند لپاره ئې د خپل خدمت نه منع كړله.نونفقه به په خاوند باندې لازم وى .په مولا به لازم نه وى .

وَلَوْ بَوَّأَهَا بَيْتًا ثُمَّ بَدَا لَهُ اَنْ يَسْتَخْدِمَهَا لَهُ ذٰلِكَ اوكه آقا ونيځې لره په كور كې ټيكاؤ نړه ور كړه بيا دَ دهٔ په زړه كې



راغله چې خدمت تړواخلي نو دا اختيار ئې شته لِاَنَّ الْحَقَّ بَاقٍ لِبَقَاءِ الْمِلْكِ څكه چې دَ آقا حق پاته دې دَ بقاء دَ ملك په وجه سره فَلَا يَسْقُطُ بِالتَّبْوِئَةِ كَمَا لَا يَسْقُطُ بِالنِّكَاحِ نو په ټكاوترړه ور كاوه سره دا حق نه ساقطيږى لكه په نكاح چې نهٔ ساقطيږى

تشريح:- كه مولا وينځې ته په يوكوركې د خاوند سره د شپې تيرولو موقع وركړله بيا د مولا رائې دا شوه چه د خپلې وينځې نه خدمت واخلي .نو ده ته دا اختيار حاصل دې.چه د شپې تيرولو اجازت منسوخ كړى .اود خاوند نه نفقه هم ساقط كړى .دليل دادې.چه د مولا دخدمت حق د ملك د بقاء په وجه پاته دې.نولكه څنګه چې په نكاح كولوسره دا حق نه ساقطيږى .دغه ډول په تبويه سره هم نه ساقطيږى .

قَالَ رضى الله عنه ذَكَرَ تَزْوِيْجَ الْمَوْلٰى عَبْدَهُ وَاَمَتَهُ وَلَمْ يَذْكُرْ رِضَاهُمَا علامه مرغينانى فرمائى چې امام محمد رحمه الله دَ آقا دَ خپل غلام او وينځې وادهٔ كول خو ذكر كړل ليكن دَ دوى دَ رضا ذكر ئې اونه كړو وَهٰذَا يَرْجِعُ اِلٰى مَذْهَبِنَا اَنَّ لِلْمَوْلٰى اِجْبَارَهُمَا عَلَى النِّكَاحِ او دا راجع دې زموږ مذهب اړخ ته چې آقا لره دَ دې دواړو په نكاح دَ مجبوره كاوه اختيار دې

تشريح:- په دې عبارت كې علامه مرغينانى رحمه الله فرمائى .چهٔ امام محمد رحمه الله په جامع صغيركې دا ذكر نكړل.چه مولا دخپل غلام اود وينځې نكاح كولې شى .خو ددوى دواړو د رضامندئ ذكر ئې اونكړلو .صاحب دهدايه رحمه الله فرمائى .چه دا زموږ مذهب دې.چه مولا خپل غلام اووينځه په نكاح باندې مجبوروليې شى .دمجبورولو مطلب دادې.كه مولا بغير ددې دواړو رضامندئ نه نكاح اوكړله.نودا نكاح به نافذ وى .

وَعِنْدَ الشَّافِعِىِّ رحمه الله لَا اِجْبَارَ فِى الْعَبْدِ دَ امام شافعى رحمه الله په نزد د غلام په اړه كې دَ مجبور كاوه حق نشته وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ اَبِى حَنِيْفَةَ رحمه الله او دايو روايت دې دَ امام ابوحنيفه رحمه الله نه

حل اللغة: ① منافع:جمع د منفعة:فائده ② انكاح: په نكاح وركول ③ تمليك:مالك جوړول ]

تشريح:-دحضرت امام شافعى رحمه الله په نيزدغلام په حق كې د جبر كاوه اختيارنشته.دا يوروايت دَ امام ابوحنيفه رحمه الله نه هم دې.چه طحاوى رحمه الله نقل كړې دې.اګرچه روايت شاذ دې.د امام شافعى رحمه الله د مذهب حاصل دادې.كه مولا بغير د غلام د رضامندئ نه نكاح اوكړله.نودا به نافذ نه وى .البته د وينځې نكاح بغير ددې د رضامندئ نه بالاجماع درست اونافذ ده.

لِاَنَّ النِّكَاحَ مِنْ خَصَائِصِ الْاٰدَمِيَّةِ څكه چې نكاح دَ آدمى كيدو خاصه ده وَالْعَبْدُ دَاخِلٌ تَحْتَ مِلْكِ الْمَوْلٰى مِنْ حَيْثُ اَنَّهُ مَالٌ او غلام داخل دې لاندې دَملك دَ مولې نه دَ مال كيدو په حيثيت سره فَلَا يَمْلِكُ اِنْكَاحَهُ، بِخِلَافِ الْاَمَةِ نو آقا به دَ دهٔ دَ نكاح كاوه مالك نه وى په خلاف دَ وينځې نه لِاَنَّهُ مَالِكٌ مَنَافِعَ بُضْعِهَا فَيَمْلِكُ تَمْلِيكَهَا څكه چې آقا دَ دې دَ منافعو دَ بضع مالك دې نو دَ بل په ملك كې ئې د ور كاوه به هم مالك وى

تشريح:- د امام شافعى رحمه الله دليل دادې.چه نكاح د آدمى (سړى كيدلو) كيدلوخاصه ده.او غلام د مولا په ملك كې داخل دې.د مال په حيثيت سره.نو دده د نكاح مالك به نه وى .حاصل داچه نكاح كوم شى ته ګډ ده.مولا دهغې مالك نه دې.نود مولا عقد نكاح كول،په داسې شى كې تصرف كول دى .دكوم چې دې مالك نه دې.نود مولا تړلې شوې نكاح به داسې منتفي وى .لكه د اجنبى نكاح، په خلاف د وينځې،څكه چې مولا د وينځې د بضع د منافعومالك دې.نو ددې د رضامندئ نه بغير بل هم مالك جوړولې شى .څكه چې دا خالص پخپل ملك كې تصرف كول دى .

د امام شافعى رحمه الله دوهم دليل دادې.چه د غلام نكاح بغير دده د رضامندئ نه مفيد نه ده.څكه چې غلام ته فى الحال د طلاق ور كاوه اختيار شته.نو دده د رضامندئ نه بغير په نكاح كولوسره د نكاح مقصود نه حاصليږى .

**وَلَنَا أَنَّ الْإِنْكَاحَ إِصْلَاحُ مِلْكِهِ** او زمونږ دلیل دا دي چې نکاح کول دَ خپل ملك اصلاح کول دی **لِأَنَّ فِيهِ تَحْصِينَهُ عَنِ الزِّنَا الَّذِي هُوَ سَبَبُ الْهَلَاكِ أَوِ النُّقْصَانِ** ځکه چې په دي کي غلام محفوظ کول دی دَ هغې زنانه چې دَهلاکت او نقصان سبب دي **فَيَمْلِكُهُ اعْتِبَارًا بِالْأَمَةِ** په دې وجه به آقا دَ نکاح کاوه مالك وی قیاس په وینځه باند

**تشریح:**-زمونږ دلیل دادي.چه نکاح کول دخپل ملك اصلاح کول دی .ځکه چې په نکاح کولوکي غلام د زنا نه محفوظ ساتل دی .کوم چې د هلاکیدلو اود نقصان سبب دي.یعنی هرکله چې حدلګولي شی .نودا حد کله هلاکوی .او کله زخم پیدا کوی .نو په اولنی صورت کي هلاکول دی .او په دوهم صورت کي مال ناقص کول دی .نو مولا د غلام د رضامندئ نه بغیر د نکاح کولومالك دي.په وینځه باندي په قیاس کاوه سره.اوجامع د دواړو په مینځ کي د ولایت سبب موجودیدل دی .یعنی د ملك رقبه حاصلیدل.او خپل ملك د زنا نه محفوظ ساتل،چه دا موجب د هلاکت اود نقصان دی .

**بِخِلَافِ الْمُكَاتَبِ وَالْمُكَاتَبَةِ** په خلاف دَ مکاتب او مکاتبې نه **لِأَنَّهُمَا الْتَحَقَا بِالْأَحْرَارِ تَصَرُّفًا فَيُشْتَرَطُ رِضَاهُمَا** ځکه چې دغه دواړه دَ احرارو سره لاحق شو از راه تصرف په دي وجه دَ دوی رضا به شرط وی .

**تشریح:**- په خلاف د مکاتب او مکاتبه،چه د دوی د رضامندئ نه بغیر مولا ددوی نکاح نشی کولي.دلیل دادي.چه دا دواړه دملك ید اود ملك تصرف په اعتبارسره،د آزاد سره لاحق شوی دی . نو که مولا ته بغیر ددوی د رضامندئ نه د نکاح اختیار ورکړي شی .نو ددوی دواړو ملك تصرف فوت کول لازمیږی .چه دا درست نه دی .په دي وجه دمکاتب اومکاتبه رضامندی شرط ګرځولي شوی دی .

### د وینځي د نکاح نه روسته قبل الدخول د وینځي مړلو

**قَالَ وَمَنْ زَوَّجَ أَمَتَهُ** چا نکاح او کړو دَ خپلې وینځې سره **ثُمَّ قَتَلَهَا قَبْلَ أَنْ يَدْخُلَ بِهَا زَوْجُهَا** بیا ئې دي لره قتل کړه مخکي دَ دي نه چې دخول ورسره او کړی خاوند دَ دي **فَلَا مَهْرَ لَهَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله** [١] نو دي لره مهر نشته په نزد دَ امام ابوحنیفه رحمه الله

**تشریح:**- صورت دمسئلي دادي.چه مولا دخپلي وینځي د یوکس سره نکاح اوکړله.بیا د دخول نه وړاندي مولا وینځه قتل کړله.نو په دي صورت کي دامام صاحب رحمه الله په نیز خاوند باندي مهرواجب نه دي.

**وَقَالَا: عَلَيْهِ الْمَهْرُ لِمَوْلَاهَا) اعْتِبَارًا بِمَوْتِهَا حَتْفَ أَنْفِهَا** صاحبین رحمهما الله وائی. دي لره مهر دي په خاوند دَ دي دَ آقا دَ پاره قیاس دَ دي په طبعي مرګ باند **وَهَذَا لِأَنَّ الْمَقْتُولَ مَيِّتٌ بِأَجَلِهِ** او دا ځکه چې مقتول په خپل أجد مړدي **فَصَارَ كَمَا إِذَا قَتَلَهَا أَجْنَبِيٌّ** نو دا شوه لکه بل څوك چې ئې مره کړی .

**حل اللغة:** ① **حتف انف:** په خپل مرګ مړینه (مړکیدل) ]

**تشریح:**- صاحبین فرمائی چې په دي باندي مهر واجب دي خو د مولی لپاره دوی په هغه صورت باندي قیاس کوی چې کله دا وینځه په خپل مرګ باندي مړه شی نو لکه څنګه چې په دغه صورت کي په خاوند باندي چې کوم مهر لازمیږی هغه به د مولی لپاره وی نو هم دغه ډول به په دي صورت کي هم مهر د مولی لپاره وی او ددي قیاس وجه داده.چه کوم کس قتل کړي شوي دي.هغه د الله تعالی په نیز په مقرره وخت باندي مړ شوي دي.د ،اهل سنت والجماعت،هم دا عقیده ده.نود مولا خپله وینځه قتلول داسي دی .لکه د وینځي پخپل طبعی مرګ باندي مړکیدل.صاحبینو رحمهما الله دوهم قیاس دا بیان کړي دي.چه لکه څنګه که دا وینځه بل یو اجنبی (پره دی )کس قتل کړي وه.نو په اتفاق به مهرنه ساقطیدلو.بلکه په خاوند به مهر واجب وو.دغه ډول په ذکر شوي مسئله کي هم په خاوند باندي د وینځي لپاره د مولا لپاره مهر واجب وی .

[١]) القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في فتح القدير(٣\٢٧١) والعناية (٣\٣٧١) وردالمحتار(٢\٤١١) وملتقى الأبحر(١\٣٦٦) ومجمع الأنهر(١\٣٦٦) نقلاً عن القول الراجح (١\٢٩١)-



**وَلَهُ أَنَّهُ مَنَعَ الْمُبْدَلَ قَبْلَ التَّسْلِيمِ** دَ امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دا دي چې ده منع کړو مبدل لره دَ تسلیم نه مخکي **فَيُجَازَى بِمَنْعِ الْبَدَلِ** نو ده لره به په بدل منع کاوه بدله ور کولای شی **كَمَا إِذَا ارْتَدَّتِ الْحُرَّةُ** لکه کله چې مرتده شی آزاده ښځه

**تشریح:**- د امام صاحب رحمه الله دلیل دادي.چه مولا مبدل(منافع د بضع) د سپارلونه وړاندې منع کړل.نو بدل یعنی مهر به منع کولي شی .او مولا ته به بدله ورکولي شی .اودا داسي ده.لکه چې آزاده ښځه مرتده شی .او مبدل یعنی بضع منع کړی .نودي مرتدي ته به ددي بدل یعنی په مهر بندولو سره به ددي بدله ورکولي شی .دغه ډول دلته کي هم ده.

**وَالْقَتْلُ فِي أَحْكَامِ الدُّنْيَا جُعِلَ إِتْلَافًا حَتَّى وَجَبَ الْقِصَاصُ وَالدِّيَةُ** او قتل لره په دنیاوی احکامو کي تلف کول مقرر کړی شوی دی تر دي چې قصاص او دیت واجب دی **فَكَذَا فِي حَقِّ الْمَهْرِ** نو دَغسې به دَ مهر په حق کي وی .

**حل اللغة:** ① **اتلاف:** هلاکول ]

**تشریح:**- په دي عبارت سره د صاحبینو رحمهما الله د دلیل نه خواب ورکوی دخواب حاصل دادي.چه قتل په حقیقت کي پخپل مقرره وخت باندي د الله تعالی په نیز مرګ دي.خو په دنیاوی احکاموکي تلف کول ګرځولی شوی دی .لکه په قتل عمد کي قصاص اوپه قتل خطاء کي دیت واجبیږی .خو په مولا باندي قصاص یا دیت نه واجبیږی .ځکه که په مولا باندي قصاص یا دیت واجب کړي شی .اودا قصاص او دیت به په مولا باندي دده لپاره واجب وی .اودا محال دی .خو په مولا باندي به ګناه وی .او که قتل خطاء وی .نوکفاره به هم واجب وی .نو لکه څنګه چې قتل په قصاص او دیت کي تلف کول ګرځولي شوی دی .دغه ډول د مهرپه حق کي هم تلف کول ګرځولي شوی دی .ګویا مولا د سپارلو نه وړاندي معقود علیه تلف کړلو.نو ددي بدل یعنی مهر به هم ساقطولي شی .

### د مباشرت نه وړاندي د ښځي خودکشي کولوکي د مهر مسئله

**وَإِنْ قَتَلَتْ حُرَّةٌ نَفْسَهَا قَبْلَ أَنْ يَدْخُلَ بِهَا زَوْجُهَا** که قتل کړو حُرې خپل ځان مخکښي دَ دي نه چې خاوند ورسره دخول او کړی **فَلَهَا الْمَهْرُ** نو دَ دي دَ پاره مهر دي

**تشریح:**- صورت د مسئلي دادي.چه آزادي ښځي د دخول نه وړاندي خپل ځان قتل کړلو.نود آئمه ثلاثه رحمهم الله په نیز به ددي ښځي لپاره مهرواجب وی

**خِلَافًا لِزُفَرَ رحمه الله هُوَ يَعْتَبِرُهُ بِالرِّدَّةِ وَبِقَتْلِ الْمَوْلَى أَمَتَهُ** په خلاف دَ زفر رحمه الله چې هغه دي لره په مرتد کیدو او دَ مولی په قتل دَ وینځي قیاس کوی **وَالْجَامِعُ مَا بَيَّنَّاهُ** او جامع هغه دي کوم چې مونږ بیان کړو

**تشریح:**- .د امام زفر رحمه الله اختلاف دي.امام شافعی رحمه الله هم د امام زفر رحمه الله سره دي.امام زفر رحمه الله ددي مسئلي حکم د مرتده په حکم باندي قیاس کوی .یعنی کله چې آزاده ښځه د دخول نه وړاندي مرتده شی .نو مهر ساقطیږی .دغه ډول به په دي مسئله کي هم مهرساقطیږی .او امام زفر رحمه الله ددي مسئلي حکم قیاس کوی .د مولا د خپلي وینځي په قتلولو باندي.یعنی که مولا خپله وینځه قتل کړله.او مخکي ددي نه چې ددي خاوند ددي سره دخول اوکړی .نو مهر ساقطیږی .دغه ډول به په ذکر شوي مسئله کي هم مهرساقطیږی .اوجامع د مقیس(د آزدي ښځي خپل خان پخپله قتلول)او مقیس علیه(د آزادي ښځي د دخول نه وړاندي مرتده کیدل،اود مولا خپله وینځه د دخول نه وړاندي قتلول) په مینځ کي د سپارلو نه وړاندي مبدل (بضع) منع کول دی .

دا خبره یاده ساتئ:چه د امام زفر رحمه الله د مولا د خپلي وینځي په قتلولو باندي قیاس کول،د امام صاحب رحمه الله په قول باندي صحیح دی .ځکه چې صاحبین رحمهما الله په دي صورت کي د مهرساقطولو قائل نه دی .

وَلَنَا أَنَّ جِنَايَةَ الْمَرْءِ عَلَى نَفْسِهِ غَيْرُ مُعْتَبَرَةٍ فِي حَقِّ أَحْكَامِ الدُّنْيَا زمونږ دليل دا دې چې د بنده پخپل نفس جنايت كول د دنيوى احكامو په حق كي معتبر نه دي فَشَابَهُ مَوْتَهَا حَتْفَ أَنْفِهَا نو دا په خپل مرګ د مړكيدو پشان شو

تشريح:- زمونږ دليل دادې.چه د سړي پخپل ځان باندې جنايت كول په دنياوى احكاموكي معتبر نه دي. اګرچه په آخرت كي به مؤاخذه كيږي .نودا پخپله د مړكيدلو مشابه شو.اود طبعي مرګ په صورت كي مهرنه ساقطيږي .بلكه په خاوند باندې واجب وى .دغه ډول به په دې صورت كي هم د ښځي لپاره مهر واجب وى.

بِخِلَافِ قَتْلِ الْمَوْلَى أَمَتَهُ په خلاف د قتل د مولى نه وينځي خپلي لره لِأَنَّهُ مُعْتَبَرٌ فِي حَقِّ أَحْكَامِ الدُّنْيَا حَتَّى تَجِبُ الْكَفَّارَةُ عَلَيْهِ ځكه چې دغه په دنيوى احكامو كي معتبر دې تر دې چې كفاره پر واجبيږي .

تشريح:- په خلاف د مولا چې خپله وينځه قتل كړي .ځكه چې په دنياوى احكاموكي داهم معتبر دى .لكه چې د قتل خطاء په صورت كي په مولا باندې كفاره واجبيږي .او كه په وينځه باندې دين وى .نو په مولا به ضمان واجب وى .نو په دې دواړو صورتونوباندې قياس كول درست نه دى .

## د عزل شرعي حيثيت

وَإِذَا تَزَوَّجَ أَمَةً او هركله چې يې د وينځي سره واده او كړو فَالْإِذْنُ فِي الْعَزْلِ إِلَى الْمَوْلَى د عزل په اړه كي اجازت د آقا په اختيار كي دي عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله (۱) نو دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزد

حل اللغة: ① عزل دادې.چه د جماع كولوپه وخت انزال بهر اوكړي .چه حمل اوندريږي .عزل د عاموعالمانو په نيز جائز دې.البته د صحابه رضي الله عنهم يوجماعت دا مكروه ګرځولې دې.
دجواز دلائل دادى . .① او په مسلم كي دحضرت جابر رضي الله عنه نه روايت دې.[كنا نعزل على عهد رسول الله ﷺ فبلغ ذالك النبي ﷺ فلم ينهنا] مونږ به د نبي كريم ﷺ په زمانه كي عزل كولو.نبي كريم ﷺ ته ددې خبر اورسيدلو.نودوى ﷺ مونږ منع نكړلو.ددې نه علاوه نورهم ډير حديثونه دي .چه د عزل په جواز باندې دلالت كوى .كوم حضرات چې دعزل دكراهت قائل دى .هغوى د حضرت عائشه رضي الله عنها د حديث نه استدلال كوى .كوم چې مسلم روايت كړې دې.الفاظ د حديث دادى .[فسألوا عن العزل قال ذاك الرواء الخفي] دوهم روايت دې.[عن عمر وعثمان رضي الله عنهما أنهما كانا ينهيان عن العزل] په يوحديث كي عزل ته موؤده صغرى فرمائيلى شوى دى .
② په صحيحينوكي دحضرت جابر رضي الله عنه نه نقل دى .چه[كنا نعزل والقرآن ينزل] مونږ به عزل كولو.او قرآن به نازليدلو
③ [سئل ابن مسعود(رض) عنه فقال لاباس به] د ابن مسعود (رض) نه د عزل په اړه كي پوښتنه اوشو.دوى ورته اوفرمائيل.چه هيڅ حرج نشته.
عزل په درې قسمه دې.① عزل خپلي مملوكه وينځي سره، په دې كي د عزل كاوه لپاره د هيڅ چانه د اجازت اړتيا نشته.② عزل آزادې ښځي سره، په دې كي دعزل د اجازت اختيار ښځي ته وى .دا دواړه صورتونه متفق عليه دى . ③ عزل منكوحه وينځي سره،په دې صورت كي اختلاف دې.
اودا صورت په كتاب كي ذكر دى .يعنى چې كله يو كس د وينځي سره واده او كړو د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دعزل د اجازت اختيار مولا ته حاصل وى .

وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ وَمُحَمَّدٍ رحمهما الله أَنَّ الْإِذْنَ فِي الْعَزْلِ إِلَيْهَا او د صاحبينو رحمهما الله نه روايت دې چې د وينځي په اختيار كي دې لِأَنَّ الْوَطْءَ حَقُّهَا حَتَّى تَثْبُتَ لَهَا وِلَايَةُ الْمُطَالَبَةِ ځكه چې وطى حق ددې دې تر دې چې ده لره ولايت د

---

(۱) القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا فى فتح القدير(۲۷۳\۳) والكفاية (۲۷۳\۳) وردالمحتار(۲\٤۱۱) والبحر(۳\۳٤۸) نقلاً عن القول الراجح (۱\۲۹۳)-



مطالبي ثابت دې وَفِي الْعَزْلِ تَنْقِيصُ حَقِّهَا او په عزل كي د دې حق كمول دى فَيُشْتَرَطُ رِضَاهَا كَمَا فِي الْحُرَّةِ نو د دې رضا به شرط وى لكه په حره كي

تشريح:- اود صاحبينو رحمهما الله نه نقل دى .چه د عزل د اجازت اختيار منكوحه ته دې.دليل دادې.چه وطى د منكوحه وينځي حق دې.او ددې لپاره د وطى د مطالبې د ولايت حق حاصل دې.نو ددې د رضامندئ نه بغير به عزل څنګه جائز وى .په عزل كولوكي د منكوحه وينځي حق كمول دى .په دې وجه به ددې رضامندي لازم وى .لكه د آزادې ښځي رضامندي بالاجماع لازم ده.ځكه چې آزادې ښځي ته هم خاوند نه د وطى د مطالبي ولايت حاصل دې.

بِخِلَافِ الْأَمَةِ الْمَمْلُوكَةِ په خلاف د مملوكې وينځي نه لِأَنَّهُ لَا مُطَالَبَةَ لَهَا فَلَا يُعْتَبَرُ رِضَاهَا .ځكه چې د دې د پاره د مطالبي حق نشته نو د دې رضا به معتبره نه وى

تشريح:- په خلاف دمملوكه وينځې،چه ددې مولا لپاره د عزل د اجازت دې.مملوكه وينځه كه راضي وى .او كه ناراضه وى .ځكه چې مملوكه وينځې ته د وطى د مطالبې اختيارنشته.نو ددې رضامندي به هم معتبر نه وى .

وَجْهُ ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ أَنَّ الْعَزْلَ يُخِلُّ بِمَقْصُودِ الْوَلَدِ وَهُوَ حَقُّ الْمَوْلَى .د ظاهر الروايه وجه دا ده چې عزل په مقصود د ولد كي خلل دې او دغه حق د مولى دې فَيُعْتَبَرُ رِضَاهُ نو د ده رضا به معتبره وى وَبِهَذَا فَارَقَتِ الْحُرَّةُ او په دې سره د وينځي د حرې نه توپير او شو .

تشريح:-د ظاهرالرواية وجه داده.چه دعزل مقصد په ولد كي خلل دې.او ولد دمولا حق دې.نود مولا د رضامندئ اعتبار به كولې شي .او هم په دې دليل سره په منكوحه وينځه او په آزاده منكوحه كي توپير كيږي .چه په منكوحه وينځه كي ولد د مولا حق دې.اوپه آزاده منكوحه كي ولد د مولا وغيره حق نه دې.اوهركله چې فارق موجود دې.نو قياس به هم باطل وى .

## د مالك په اجازت سره د وينځي نكاح كولو نه روسته په آزاديدلو خيارفسخ

وَإِنْ تَزَوَّجَتْ بِإِذْنِ مَوْلَاهَا كه وينځه نكاح او كړي د خپل مولى په اجازت ثُمَّ أُعْتِقَتْ بيا دغه آزاده شي فَلَهَا الْخِيَارُ حُرًّا كَانَ زَوْجُهَا أَوْ عَبْدًا نو د دې د پاره خيار دې د دې خاوند آزاد وى او كه غلام

تشريح:- صورت د مسئلې دادې.چه وينځي د خپل مولا په اجازت سره نكاح اوكړله.بيا دا وينځه آزده كړې شوه.نو ددې وينځې لپاره په اختيارعتق كي اختلاف دې.د احنافو رحمهم الله مذهب دادې.چه د آزادئ په وخت ددې خاوند آزاد وو.اوكه غلام په دواړه صورتونوكي به ددې لپاره اختيارعتق ثابت وى .كه غواړي نكاح دې پاتِه اوساتي .او كه غواړي فسخ دې كړي

لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ لِبَرِيرَةَ حِينَ عَتَقَتْ {مَلَكْتِ بُضْعَكِ فَاخْتَارِي}(۱) ځكه چې د نبي كريم ﷺ ارشاد دې د حضرت بريره رضي الله عنها د پاره كله چې هغه ازاده شوه په د خپلې بضع مالكه شوې فاختاري نو ته اختيار كړه فَالتَّعْلِيلُ بِمِلْكِ الْبُضْعِ صَدَرَ مُطْلَقًا نو د ملك د بضع سره علت بيا نول مطلقاً صادر شوى دى فَيَنْتَظِمُ الْفَصْلَيْنِ نو دا به دواړو صورتونو لره شامله وى

تشريح:- د احنافو رحمهم الله دليل د عائشه رضي الله عنها حديث دې.يعنى حضرت عائشه رضي الله عنها چې هركله خپله وينځه حضرت بريره رضي الله عنها آزاده كړله.نو بريره رضي الله عنها ته نبي كريم ﷺ اوفرمائيل.[ملكت بضعك فاختارى] په دې حديث كي نبي كريم ﷺ د خيار ثابتولوعلت ملك بضع ګرځولې دې.او په دې اړه كي نې هيڅ توپير نه دې كړې.چه د بريره

---

(۱) من حديث عائشة رضي الله عنها أخرجه الدارقطني فى سننه (۳/۲۹۰) رقم ۱۷۰)-

رضی الله عنها خاوند ازاد دې.او كه غلام دې.نودا حديث به د خپل اطلاق په وجه دواړو ته ګډ وي .يعنى كه خاوند آزاد وي .او كه غلام وي .په دواړه صورتونوكي به معتقه وينځې ته خيارعتق حاصل وي .يعنى كه خاوند رحمه الله د بيان مطابق به هم دا حديث د امام شافعي او امام مالك رحمهما الله په خلاف حجت وي . د صاحب هدايه رحمه الله په دې اړه كي روايت مختلف دى .چه په كوم وخت كي بريره رضی الله عنها ته اختيار وركړې شو.نودغه وخت ددې خاوند غلام وو.او كه آزاد وو. لنډيز داچه د ام المؤمنين حضرت عائشه رضی الله عنها نه د حضرت بريره رضی الله عنها قصه درې تابعينو روايت كړې ده.يو، اسود ،دې.دده په ټولو روايتونوكي راغلى دى .چه دې آزاد وو. دوهم عروة ابن الزبيرددوى په يو روايت كي راغلى دى .چه دې غلام وو.او په دوهم كي دى .چه دې آزاد وو.حالانكه دواړه روايتونه صحيح دى .دريم ، قاسم، دې.دده په يو روايت كي راغلى دى .چه دې آزاد وو.اوپه دوهم كي شك شوې دې.حالانكه دواړه حديثونه صحيح الاسناد دى .د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما نه نقل دى .چه د بريره رضی الله عنها خاوند يوحبشى غلام وو.چه دده نوم مغيث وو.بيا نبى كريم ﷺ بريره رضی الله عنها ته خيار وركړلو. بهرحال هركله چې روايات متعارض دى .نودا واړه روايات به پريخودلې شي .اود نبى كريم ﷺ په قول [ملكت بضعك فاختاري] باندې به عمل كولې شي .

وَالشَّافِعِيُّ رحمه الله يُخَالِفُنَا فِيمَا إِذَا كَانَ زَوْجُهَا حُرًّا او شافعي رحمه الله زمونږ خلاف كوي په هغې صورت كي كله چې د دې خاوند آزاد وي وهو محجوج به او دې په اطلاق دَ حديث سره محجوج دې

**تشريح:-** امام مالك او امام شافعي رحمهما الله فرمائي .چه د ازادئ په وخت خاوند آزاد وو.نو وينځې ته به خيارعتق حاصل نه وي .او كه غلام وي .نوخيار عتق به حاصل وي .حاصل داچه خاوند كه غلام وي .نو بالاتفاق به معتقه وينځې ته خيارعتق حاصل وي .او كه خاوند د وينځې دآزاديدلو په وخت آزاد وي .نو په دې كي اختلاف دې.د احنافو رحمهم الله په نيز په دې صورت كي هم د وينځې لپاره خيارعتق حاصل دې.اود امام مالك او امام شافعي رحمهما الله په نيز په دې صورت كي به د وينځې لپاره خيارعتق حاصل نه وي .

وَلِأَنَّهُ يَزْدَادُ الْمِلْكُ عَلَيْهَا عِنْدَ الْعِتْقِ او ځكه چې په وينځه به دَ ملك اضافه وي دَ آزادى په وخت فَيَمْلِكُ الزَّوْجُ بَعْدَهُ ثَلَاثَ تَطْلِيقَاتٍ نو خاوند به ددې نه نو دَ درې طلاقو مالك وي فَتَمْلِكُ رَفْعَ أَصْلِ الْعَقْدِ دَفْعًا لِلزِّيَادَةِ نو وينځه به اصل عقد لره دَ پورته كاوه مالكه وي دَ زياتى دفع كاوه دَ پاره .

**تشريح:-** دوهم دليل عقلى دادې.چه د وينځې آزاديدلو په وخت به په دې باندې د ملك زياتوالې اوشى .ځكه چې د وينځې آزاديدلو نه وړاندې خاوند د دوې [دوه] طلاقو مالك وو.اود آزاديدلو نه روسته به د درې طلاقو مالك وى .نو معتقه وينځې ته د ملك د زياتوالى دفع كاوه لپاره د اصل عقد لرې كاوه اختياروركړې شو.خو په دې باندې دا اعتراض كيدلې شي .چه د امام شافعي رحمه الله په نيزد طلاق په تعداد كي د سړو اعتباركيږى .د ښځو اعتبار نه كيږى .نو هركله چې د وينځې د آزاديدلو په وخت خاوند آزاد وو.نود وينځې په آزاديدلو سره په معتقه وينځه باندې د ملك اضافه نه ده شوې.بلكه خاوند د وړاندې نه د درې طلاقو مالك وو.خواب*د طلاق په تعداد كي د ښځو معتبر كيدل، په قوى دليل سره ثابت دى .لكه چې په كتاب الطلاق كي به راشى .نو ددې په وجه به اعتراض نشى كولې.

### د مكاتبي د بدل كتابت اداكولونه روسته په آزاديدلو د خيارفسخ حكم

وَكَذٰلِكَ الْمُكَاتَبَةُ او دَغسې مكاتبه ده يَعْنِي إِذَا تَزَوَّجَتْ بِإِذْنِ مَوْلَاهَا ثُمَّ عَتَقَتْ يعنى هر كله چې دې دَ خپل آقا په اجازت سره نكاح او كړو بيا دَغه آزاده شوه

**تشريح:-** صورت د مسئلې دادې.كه مكاتبه دخپل مولا په اجازت سره نكاح اوكړله.بيا مكاتبه بدل كتابت ادا كړلو.او ازاده شوه.نود ايمه ثلاثه رحمهم الله په نيز به ددې معتقه مكاتبه لپاره خيارعتق حاصل وى . كه ددې خاوند آزاد وى .او كه غلام وى .



وَقَالَ زُفَرُ رحمه الله: لَا خِيَارَ لَهَا امام زفر رحمه الله فرمائى چې دَ دې دَ پاره خيار نشته لِأَنَّ الْعَقْدَ نَفَذَ عَلَيْهَا بِرِضَاهَا ځكه چې عقد په دې دَ دې په رضا سره نافذ شوې دې وَكَانَ الْمَهْرُ لَهَا او مهر هم دې لره دې فَلَا مَعْنَى لِإِثْبَاتِ الْخِيَارِ بِخِلَافِ الْأَمَةِ. نو هيڅ معنى نشته دَ اثبات دَ خيار په خلاف د وينځې نه لِأَنَّهُ لَا يُعْتَبَرُ رِضَاهَا ځكه چې دَ دې رضا معتبره نه ده

**تشريح:-** د امام زفر رحمه الله په نيز به ددې لپاره خيارعتق حاصل نه وي .د امام زفر رحمه الله دليل دادې.چه د معتقه وينځې لپاره د خيارثبوت په دوې [دوه] وجوسره وو.يوه داچه د وينځې عقدنكاح ددې د رضامندئ نه بغير نافذ وو. دوهم داچه ددې مهر ددې د مولا لپاره وو.او په مكاتبه كي دا دواړه خبرې موجود نه دى .ځكه چې د مكاتبه نكاح ددې درضامندئ نه بغير نه نافذ كيږى . او مهربه هم ددې لپاره وى .ددې د مولا لپاره به نه وى .نود مكاتبه لپاره به د آزاديدلو نه روسته خيارعتق ثابت نه وى .
خو كه څوك اعتراض اوكړى .چه د مملوكه وينځې په رضامندئ سره نكاح شوى وى .نو ددې لپاره هم خيارعتق ثابتول پكار نه دى .نوددې ځواب دادې.چه دمملوكه وينځې د رضامندئ اعتبار نه دې شوې.

وَلَنَا أَنَّ الْعِلَّةَ ازْدِيَادُ الْمِلْكِ. زمونږ دليل دا دې چې علت زياتې دَ ملك دې وَقَدْ وَجَدْنَاهَا فِي الْمُكَاتَبَةِ او دا مونږ په مكاتبه كي موندلې دې لِأَنَّ عِدَّتَهَا قُرْءَانِ وَطَلَاقَهَا ثِنْتَانِ ځكه چې دَ دې عدت دوې [دوه] حيضه او طلاق دوې [دوه] دى

**حل اللغة*** ① ازدياد: زياتوى كول ② قرءان: تثنيه د قرء په معنى د حيض]

**تشريح:-** زمونږ دليل دادې.چه د آزاديدلو نه روسته د خيارعتق علت په معتقه وينځه باندې دطلاق دملكيت زياتيدل دى .اودا علت په مكاتبه كي موجود دې.ځكه چې د مكاتبه عدت دآزاديدلو نه وړاندې دوې [دوه] حيضه وو.اود آزاديدلو نه روسته به درې حيضه شي .دغه ډول د آزاديدلونه وړاندې ددې خاوند د دوې [دوه] طلاقو مالك وو.په آزاديدلو سره به د درې طلاقو مالك وى .نو هركله چې د خيارعتق علت په مكاتبه كي موجود دې.نود مكاتبه د آزاديدلونه روسته به ددې لپاره هم خيارعتق حاصل وى

### د مولا د اجازت نه بغير د وينځې نكاح كولونه روسته آزاديدل اود نكاح حكم

وَإِنْ تَزَوَّجَتْ أَمَةٌ بِغَيْرِ إِذْنِ مَوْلَاهَا او كه وينځې نكاح او كړو بغير دَ اجازت دَ مولى خپل نه ثُمَّ أُعْتِقَتْ صَحَّ النِّكَاحُ بيا آزاده شوه نو نكاح يې صحيح دې لِأَنَّهَا مِنْ أَهْلِ الْعِبَارَةِ ځكه چې دا دَ اهل عبارت نه ده وَامْتِنَاعُ النُّفُوذِ لِحَقِّ الْمَوْلَى وَقَدْ زَالَ او امتناع دَ نفوذ دَ حق دَ مولى په وجه سره وو كوم چې زائل شو وَلَا خِيَارَ لَهَا او دې لره به خيار نه وى

**تشريح:-** په عبارت كي دوې [دوه] خبرې دى .يوه داچه وينځې بغير د مولا د اجازت نه نكاح اوكړله.بيا دا وينځه آزاده كړې شوه.نودا نكاح به صحيح(نافذ) وى .دويمه داچه ددې وينځې لپاره به خيارعتق حاصل نه وى . د نكاح د صحت دليل دادې.چه مقتضى د نكاح موجود دې.ځكه چې ركن د نكاح (ايجاب اوقبول)ددې د اهل نه صادر شوې دې.ځكه چې وينځه دعاقله بالغه كيدلو په وجه د تعبيركونكو د اهل څخه ده. او مانع د نكاح منتفى شو.ځكه چې نفاذ د نكاح د مولا د حق په وجه ممنوع وو.اوحق د مولا په آزاديدلو سره زائل شو.نو هركله چې مقتضى موجود او مانع منتفى دې.نونكاح صحيح شوه.

لِأَنَّ النُّفُوذَ بَعْدَ الْعِتْقِ ځكه چې نفوذ دَ آزادى نه روسته شوې دې فَلَا تَتَحَقَّقُ زِيَادَةُ الْمِلْكِ، كَمَا إِذَا زَوَّجَتْ نَفْسَهَا بَعْدَ الْعِتْقِ. نو متحقق به نه وى زياتې دَ ملك لكه چې هر كله دَ آزادى نه روسته خپل نكاح پخپله اوكړى .

**تشريح:-** د خيار دعدم ثبوت وجه داده.چه نكاح د وينځې د آزاديدلو نه روسته نافذ شوې ده.نو په ازادولو سره دملك زياتوالې نه دې متحقق شوې.نو هركله چې دخيارعلت موجود نشو.نو ددې معتقه وينځې لپاره به

خیار هم ثابت نه وی .اودا داسې ده.لکه د ازادیدلو نه روسته که دې پخپله خپله نکاح کوله.نودې ته به خیارحاصل نه وې.دغه ډول به دلته کې هم حاصل نه وی .

**د مولا داجازت نه بغیر د وینځې دمهرمثل نه په زیات باندې نکاح کول**

فَإِنْ كَانَتْ تَزَوَّجَتْ بِغَيْرِ إِذْنِهِ عَلَى أَلْفٍ نو که وینځې خپل نکاح او کړو بغیر دَ اجازت دَ مولی نه په هزار درهمو باند وَمَهْرُ مِثْلِهَا مِائَةٌ او مهر مثل دَ دې سل وه فَدَخَلَ بِهَا زَوْجُهَا او دخول ئې ورسره او کړو خاوند دَ دې ثُمَّ أَعْتَقَهَا مَوْلَاهَا بیا آزاده کړه دې لره مولی دَ دې فَالْمَهْرُ لِلْمَوْلَى نو مهر به ئې دَ مولی دې

**تشریح:**- صورت دمسئلې دادې.چه وینځې د خپل مولا د اجازت نه بغیر نکاح اوکړله.اومهر ئې زر درهمه مقرر کړل.حالانکه مهرصرف سل درهمه دی .بیا خاوند دخول اوکړلو.ددې نه روسته مولا خپله وینځه آزاده کړله.نو مهر به واړه په تولـه د مولا لپاره وی .د مسئلې په صورت کې مسمی زراو مهرمثل سل درهمه خودلی شویدی .ددې لپاره چې معلومه شی .که مسمی دمهرمثل نه زیات وی .نوبیا به هم د مولا لپاره وی په دې شرط چې دخول قبل العتق وی .

لِأَنَّهُ اسْتَوْفَى مَنَافِعَ مَمْلُوكَةً لِلْمَوْلَى ځکه چې هغه داسې منافع وصول کړی دی کوم چې دَ آقا مملوك دی

**تشریح:**- دلیل ددې دادې.چه خاوند داسې منافع حاصل کړی دی .چه د مولا مملوك دی .نو بدل یعنی مهربه هم د مولا لپاره واجب وی .

وَإِنْ لَمْ يَدْخُلْ بِهَا حَتَّى أَعْتَقَهَا او که خاوند ورسره دخول نه وه کړې تر دې چې آقا آزاده کړه فَالْمَهْرُ لَهَا نو مهر به دَ دې وی لِأَنَّهُ اسْتَوْفَى مَنَافِعَ مَمْلُوكَةً لَهَا. ځکه چې خاوند داسې منافع وصول کړل کوم چې دَ وینځې مملوك دی .

**تشریح:**- که د مولا د آزادولو نه روسته خاوند دخول کړې وی .یعنی دخول بعد العتق دې.نومهر به د معتقه وینځې لپاره وی .ځکه چې په دې صورت کې خاوند داسې منافع وصول کړیدی .چه د وینځې لپاره مملوك دی .نو بدل یعنی مهربه هم د وینځې لپاره واجب وی .

وَالْمُرَادُ بِالْمَهْرِ الْأَلْفُ الْمُسَمَّى او دَ مهر نه مراد یو هزار مسمی دې لِأَنَّ نَفَاذَ الْعَقْدِ بِالْعِتْقِ اسْتَنَدَ إِلَى وَقْتِ وُجُودِ الْعَقْدِ ځکه چې دَ عتق په وجه سره دَ عقد نفاذ دَ وجود دَعقد دَ وخت اړخ ته منسوب دې فَصَحَّتِ التَّسْمِيَةُ وَوَجَبَ الْمُسَمَّى نو تسمیه صحیح او مسمی به واجب وی

**حل اللغة:** ① **نفاذ:** نافذ کیدل ② **استند:** تکیه وهلې ده اضافت ئې شوې دې ]

**تشریح:**- دا عبارت د یو اعتراض ځواب دې.اعتراض دادې.چه د دخول قبل العتق په صورت کې دمولا لپاره دمهرمثل په مقدار واجبول پکار دی .اوکوم چې دمهرمثل نه زیات وی .هغه دې ښځې ته ورکړې شی .ځکه چې من کل وجه د بضع قیمت مهرمثل دې.اوبضع د مولا ملك دې.نود بضع قیمت د مولا لپاره کیدل پکار دی .د قیمت نه زیاتی د مولا لپاره کیدل پکار نه دی .صاحب دهدایه رحمه الله په ځواب کې فرمائی .چه دمهرنه مراد زرمسمی دې.مهرمثل مراد نه دې.ځکه چې د وینځې د آزادیدلو په وجه د عقد نفاذ دَ عقد د وجود وخت اړخ ته منسوب کیږی . یعنی کوم وخت چې نکاح منعقد شوې وه.په زرمسمی باندې.نودا تسمیه به صحیح وی .او مسمی به واجب وی .صرف داخبره ده.که د دخول نه روسته آزاده شوې وی .نودا مهربه د مولا وی .اوکه د دخول نه وړاندې آزاده شوې وی .نودا مهربه هم ددې وینځې وی .

وَلِهَذَا لَمْ يَجِبْ مَهْرٌ آخَرُ بِالْوَطْءِ فِي نِكَاحٍ مَوْقُوفٍ په دې وجه په نکاح موقوف کې دَ وطی په وجه سره بل مهر نه واجبیږی لِأَنَّ الْعَقْدَ قَدْ اتَّحَدَ بِاسْتِنَادِ النَّفَاذِ ځکه چې دَ استناد دَ نفاذ په وجه سره عقد متحد دې فَلَا يُوجِبُ إِلَّا مَهْرًا وَاحِدًا نو نه به واجبوی مگر یو مهر لره .



**تشریح:**- هم په دې وجه د عقد نفاذ د عقد وجود اړخ ته منسوب دې.په نکاح موقوف کې به د وطی په وجه دوهم مهرواجب نه وی .مثلاً وینځې د مولا د اجازت نه بغیر نکاح اوکړله.بیا مولا اجازت ورکړلو.نودا به نشی کیدلې.چه د اجازت نه وړاندې کومه وطی شویده.دهغې مهربه واجب وی .بیا د اجازت نه روسته په وطی کولوسره به مسمی واجب وی .ځکه چې په اجازت سره هرکله هغه عقد نافذ شو.کوم چې موقوف وو.نوګویا د عقد په وخت اجازت اوشو.نوهره یوه وطی په نکاح جائزکې واقع شوه.نو یومهربه لازم وی .یعنی نفاذ د عقد وخت اړخ ته منسوب کولوسره یوعقد پاتې شو.دوې [دوه] عقدونه نه دی .او په یوعقد سره یومهر واجبیږی .نو دلته کې به هم یومهر واجب وی .

**د خوی وینځې سره مباشرت اوددې مسئلې**

وَمَنْ وَطِئَ أَمَةَ ابْنِهِ او چا چې وطی اوکړه دَ خپل ځوئی دَ وینځې سره فَوَلَدَتْ مِنْهُ نو بچې ئې ترې راوړو فَهِيَ أُمُّ وَلَدٍ لَهُ نو دغه وینځه دَ پلارام ولده ده وَعَلَيْهِ قِيمَتُهَا وَلَا مَهْرَ عَلَيْهِ او په ده دَ وینځې قیمت واجب دې او مهر پر نشته وَمَعْنَى الْمَسْأَلَةِ أَنْ يَدَّعِيَهُ الْأَبُ.او دَ مسئلې مراد دا دې چې پلار د دې بچې دعوه او کړی

**تشریح:**- صورت د مسئلې دادې.چه پلار د خپل ځوی وینځې سره وطی اوکړله.ددې وطی په نتیجه کې د وینځې بچې پیداشو.نودې وینځې ته به د پلار ام ولد ونیلې شی .اوپه پلار به ددې وینځې قیمت واجب وی .اګرچه پلار فقیر وی .اود بچی قیمت به واجب نه وی .خو په پلار به مهرواجب نه وی .صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی .چه دا وینځه به هغه وخت د پلار ام ولد وی .چه کله پلار ددې بچې د نسب دعوی اوکړی .چه دا بچې زما د نطفې نه پیدا دې.او پلار آزاد عاقل مسلمان وی .

وَوَجْهُهُ أَنَّ لَهُ وِلَايَةَ تَمَلُّكِ مَالِ ابْنِهِ لِلْحَاجَةِ إِلَى الْبَقَاءِ او وجه ئې دا ده چې دَ پلار دَ پاره دَ ځوئې دَ مال دَ مالك کیدو ولایت دې دَ احتیاجِ الی البقاء په وجه فَلَهُ تَمَلُّكُ جَارِيَتِهِ لِلْحَاجَةِ إِلَى صِيَانَةِ الْمَاءِ نو ده لره به دَ ملك کیدو دَ وینځې دَ ځوئی ولایت وی دَ خپلو اوبو دَ محفوظ ساتلو دَ اړتیا په وجه

**حل اللغة:** ① **صيانة:** ساتنه ② **الحارية:** وینځه ]

**تشریح:**- دلیل ددې دادې.چه پلار ته دا ولایت حاصل دې.چه دې د خپل ځوی د مال مالك شی .دخپل ځان پاته ساتلو دپاره،ځکه چې په حدیث کې دی .[أنت ومالك لأبيك] یعنی ته اوستا مال ستا د پلار لپاره دې.د حضرت عائشه رضي الله عنها نه روایت دې.چه[أن رسول الله ﷺ قال ولد الرجل من كسبه فكلوا من امـوالهم] یعنی دسړی اولاد دده دکسب ځنې دې.نو ددوی د مالونو نه خورئ.دعمرو بن شعیب رضي الله عنه نه روایت دې.[أن النبي ﷺ قـال إن أولادكم من أطيب كسبكم فكلوا من كسب أولادكم] یعنی نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی .چه ستاسو اولاد ستاسو بهترینه ګټه ده.نوتاسو د خپل اولاد د ګټې نه خورئ.او هرهغه کس چې د نفس د بقاء په وجه ده ته د خپل خوی د مال مالك جوړیدلوصلاحیت حاصل دې.ده ته دخپلو اوبو د محفوظ ساتلو په وجه دخپل خوی د وینځې مالك جوړیدلوصلاحیت هم حاصل دې.

غَيْرَ أَنَّ الْحَاجَةَ إِلَى إِبْقَاءِ نَسْلِهِ دُونَهَا إِلَى إِبْقَاءِ نَفْسِهِ صرف دومره ده چې دَ ابقاء دَ نسل اړتیا کمتر دې دَ ابقاء دَ نفس په نسبت فَلِهَذَا يَتَمَلَّكُ الْجَارِيَةَ بِالْقِيمَةِ وَالطَّعَامَ بِغَيْرِ قِيمَةٍ په دې وجه په قیمت سره به دَ وینځې مالك وی او دَ طعام مالك به وی بغیر قیمت نه

**حل اللغة:** ① **ابقاء:** پاته پاتې کول ]

**تشریح:**- دا عبارت د یواشکال ځواب دې.اشکال دادې.که صیانت د ماء د نفس د بقاء پشان دې.نوپه پلار باندې دوینځې قیمت واجبول پکار نه دی .لکه څنګه چې دخوراك څکاك په څیزونوکې په پلار باندې قیمت نه واجبیږی .علامه مرغینانی رحمه الله په ځواب کې فرمائی .چه د نسل د بقاء اړتیا د نفس د بقاء د اړتیا نه

كمتر دي.هم داوجه ده.چه زوي به په دي باندي نشي مجبوروليٍ.چه دي پلار ته د استيلاد لپاره وركړي .ځكه چي دا ضروری نه ده.نوهم ددي توپير په وجه به پلار د وينځي ،مالك بالقيمت،وی. اود طعام به بغير د قيمته مالك وی .

ثُمَّ هٰذَا الْمِلْكُ يَثْبُتُ قُبَيْلَ الْاِسْتِيْلَاءِ شَرْطًا لَهُ بيا دا ملك دَ استيلا د نه مخكي ثابتيږی دَ استيلاد دَ پاره شرط كيدل هم ثابت نه دي إِذِ الْمُصَحِّحُ حَقِيْقَةُ الْمِلْكِ أَوْحَقُّهُ، وَكُلُّ ذٰلِكَ غَيْرُ ثَابِتٍ لِلْأَبِ فِيْهَا حَتّٰى يَجُوْزَ لَهُ التَّزَوُّجُ بِهَا تر دي چي دَ پاره تزوج جائز دي دَ وينځي سره فَلَا بُدَّ مِنْ تَقْدِيْمِهِ نو ضروری دی مقدم ګڼړل دَ ملك فَتَبَيَّنَ أَنَّ الْوَطْءَ يُلَاقِيْ مِلْكَهُ نو دا ظاهره شوه چي وطی دَ ملك اب سره متصل ده فَلَا يَلْزَمُهُ الْعُقْرُ. نو په پلار به عقر لازم نه وی

**تشریح:**- دا عبارت د يواعتراض ځواب دي.حاصل د اعتراض دادي.چه د استيلاد لپاره ضروری دی .چه وطی په ملك كي شوي وی .لكه مثلاً په مملوكه وينځه كي وطی شوي وی .يا په مكاتبه وينځي كي ،او دلته نه د پلار لپاره په حقيقت كي ملك ثابت دي.او نه حق د ملك شته.هم دا وجه ده.چه د خوی د وينځي سره د پلار نكاح جائز ده.كه د خوی په وينځه كي د پلار لپاره حقيقتِ ملك ياحق د ملك وي.نوددي سره به نكاح درست نه وه.بهرحال پلار لپاره د خوی په وينځه كي چي هركله نه په حقيقت كي ملك ثابت دي.او نه حق د ملك شته.نودا وينځه دده ام ولد څنګه كيدلي شی .اوچونكه د غيرپه ملك كي وطی شوي ده.نو په پلار د وطی په وجه عقر(تاوان) واجبيدل هم پكار دی .ځواب٭ضرورةً د پلار ملك په وطی باندي مقدم منلي شوي دي.چه دپلار فعل حرام واقع نشی .يا په دي وجه چي ملك د استيلاد د صحت لپاره شرط دي.اوشرط د شيْ نه مقدم وی .نو هركله چي دشرط كيدلو په وجه ملك په وطی باندي مقدم دي.نو دا خبره ښكاره شوه.چه وطی دپلار په ملك كي واقع شوي ده.او هركله چي وطی په ملك كي موجود شوه.نو په پلار به عقر هم واجب نه وی .ځكه چي مملوكه سره وطی كاوه باندي عقر نه لازميږی

وَقَالَ زُفَرُ وَالشَّافِعِيُّ رحمهما الله: يَجِبُ الْمَهْرُ امام زفر او امام شافعی فرمائی چي مهر به واجب وی لِأَنَّهُمَا يُثْبِتَانِ الْمِلْكَ حُكْمًا لِلْاِسْتِيْلَادِ كَمَا فِي الْجَارِيَةِ الْمُشْتَرَكَةِ ځكه چي دوی ملك لره ثابتوی حكماً دَ پاره دَ استيلاد لكه په وينځه مشتركه كي چي وی وَحُكْمُ الشَّيْءِ يَعْقُبُهُ وَالْمَسْأَلَةُ مَعْرُوْفَةٌ. او حكم دَ شی دَ شی نه روسته وی او مسئله مشهوره ده .

**حل اللغة٭** ① استيلاد:ام ولد جوړول ② يعقب:روستو راځی ]

**تشریح:**- .امام زفر او امام شافعی رحمهما الله فرمائی .چه په دي صورت كي به په پلار باندي مهرواجب وی .دليل دادي.چه دا دواړه بزرګان ملك د استيلاد حكم ګرځوی .اوحكم د شيْ د شی نه روسته وی .نود پلار ملك به د وطی نه روسته ثابت وی .اوهركله چي د پلار ملك د وطی نه روسته موجود شو.نو ګويا پلار د غيرمملوكه وينځي سره وطی كړي ده.اود غيرمملوكه سره د وطی په صورت كي مهر اوعقر واجبيږی .نو په پلار به ددي وطی په وجه مهرواجب وی .لكه په مشترك وينځه كي .يعنی يوه وينځه دپلار اوخوی په مينځ كي مشترك ده.بيا ددي مشترك وينځي بچي پيدا شو.پلار ددي بچی د نسب دعوی اوكړله.نود پلار څخه به ددي بچی نسب ثابت وی .او په پلار به بالاجماع نصف عقر واجب وی .امام زفر او امام شافعی رحمهما الله فرمائی .چه په جاريه مشتركه كي د پلاريو ډول ملك قائم دي.ددي باوجود په پلار باندي عقرواجب شوي دي.نو په كوم صورت كي چي د پلار ملك بالكل قائم نه دي.نوپه دي صورت كي خو په درجه اولی پلار باندي عقر واجبول پكار دی .ددي حضراتو د قياس ځواب دادي.چه په ذكرشوي مسئله كي ملك په وطی باندي د اړتيا په وجه مقدم منلي شوي دي.چه په غيرملك كي وطی واقع نشی .او په دي مسئله كي چونكه يو ډول ملك موجود دي.چه د استيلاد د صحت لپاره كافی دي.په دي وجه د ملك د تقديم څه اړتيا نشته.دا مسئله د جامع صغير په شروح كي مشهوره ده.چه زموږ په نيز به ملك د استيلاد نه وړاندي دشرط په حيثيت سره ثابت وی



.اود امام زفر او امام شافعی رحمهما الله په نيز به ملك د استيلاد نه روسته د حكم په حيثيت سره ثابت وی .

## د خوی وينځي سره نكاح.اود بچي په زيږيدل د مهر وجوب

قَالَ وَلَوْ كَانَ الْاِبْنُ زَوَّجَهَا إِيَّاهُ مِنْهُ كه خوئی دَ خپلي وينځي نكاح دَ خپل پلار سره او كړو فَوَلَدَتْ بيا هغي بچي راوړو لَمْ تَصِرْ أُمَّ وَلَدٍ لَهُ نو دا دَ پلار ام ولده نه شی ګرځيدي وَلَا قِيْمَةَ عَلَيْهِ اونه به په پلار قيمت وی وَعَلَيْهِ الْمَهْرُ او په ده به مهر وی وَوَلَدُهَا حُرٌّ او دَ دي وينځي بچي به آزادی وی لِأَنَّهُ صَحَّ التَّزَوُّجُ عِنْدَنَا خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ رحمه الله ځكه چي صحيح دي تزوج زموږ په نزد په خلاف دَ شافعی [رحمه الله]

**تشریح:**-صورت د مسئلي دادي.چه يوخوی د خپل پلار سره د خپلي وينځي نكاح اوكړله.بيا ددي وينځي نه د پلار د نطفي نه بچي پيدا شو.نودا وينځه به د پلار ام ولد نه وی .اونه به په پلار باندي د خوی لپاره د دي وينځي قيمت واجب وی .البته په پلار به مهرواجب وی .او ددي وينځي كوم اولاد چي د پلار د نطفي نه پيداشی .آزاد به وی .

①په دي اړه كي اختلاف دي.چه د خوی دوينځي سره د پلار نكاح جائز ده اوكه نه ده؟ احناف رحمهم الله د جواز قائل دی .او امام شافعی رحمه الله دعدم جواز قائل دي.

②د امام شافعی رحمه الله دليل دادي.چه د خوی په مال كي د پلار لپاره حق ملك ثابت دي.د[انت ومالك لأبيك] په وجه.هم دا وجه ده.كه پلار د خپلي وينځي سره وطی اوكړه.اودا ئي حرام ګڼړله.بيا به هم په پلار باندي حد نه لازميږی .اوهرهغه كس چي د هغه لپاره په كومه وينځه كي د ملك حق حاصل وی .دهغي وينځي سره دده نكاح جائز نه ده.نود خوی وينځي سره به د پلار نكاح جائز نه وی .

لِخُلُوِّهَا عَنْ مِلْكِ الْأَبِ دَ ملك دَ پلار نه دَ وينځي دَ خالی كيدو په بنا أَلَا يُرٰى أَنَّ الْاِبْنَ مَلَكَهَا مِنْ كُلِّ وَجْهٍ آيا نه نشي كتلي. چي خوئ من كل وجه دَ وينځي مالك دي فَمِنَ الْمُحَالِ أَنْ يَمْلِكَهَا الْأَبُ مِنْ وَجْهٍ نو دا محاله ده چي پلار مالك شی د دي وينځي من وجه

**تشریح:**-د احنافو رحمهم الله دليل دادي.چه د خوی وينځه د پلار د ملك نه بالكل خالی ده.لكه تاسو غور اوكړئ. چي زوي ددي وينځي من كل وجه مالك دي.دمن كل وجه مالك كيدلو دليل دادي.چه د خوی لپاره ددي سره وطی كول حلال دی .او كه آزاده ئي كړی .نو آزادی به واقع شی .هركله چي زوي من كل وجه مالك دي.نودا خبره امر محال ده.چه پلار ددي وينځي من كل وجه يا من وجه مالك وی .ځكه چي [جمع بين الملكين لشخصين فی محل واحد فی زمان واحد ممتنع] ده.

وَكَذَا يَمْلِكُ مِنَ التَّصَرُّفَاتِ مَا لَا يَبْقٰى مَعَهُ مِلْكُ الْأَبِ دغه ډول خوئ دَ داسي تصرفاتو مالك دي دَ كوموسره چي دَ پلارملكيت پاته نه شی پاتي كيداي لَوْ كَانَ، فَدَلَّ ذٰلِكَ عَلَى انْتِفَاءِ مِلْكِهِ كه دغه وی نو دا دَ ملك اب په انتفاء دال دي

**تشریح:**- دويمه وجه داده.چه زوي په دي وينځه كي د داسي تصرفاتو مالك دي.چه كه ددي تصرفاتو سره د پلار ملك وو.بيا هم پاته نه پاتي كيدله.مثلاً زوي ددي خپلي وينځي د خرڅولو، هبه كولو،آزادولو،او په اجاره باندي د وركاوه مالك دي.نودا هم د پلار د ملك په نه كيدلو باندي دلالت كوی .

إِلَّا أَنَّهُ يَسْقُطُ الْحَدُّ لِلشُّبْهَةِ ليكن حد دَ زنا په وجه دَ شبهي ساقطيږی فَإِذَا جَازَ النِّكَاحُ صَارَ مَاؤُهُ مَصُوْنًا بِهِ نو هركله چي نكاح جائز شونو دَ پلار اوبه دَ نكاح په وجه محفوظي شوي فَلَمْ يَثْبُتْ مِلْكُ الْيَمِيْنِ نو ملك يمين ثابت نه شو فَلَا تَصِيْرُ أُمَّ وَلَدٍ لَهُ، وَلَا قِيْمَةَ عَلَيْهِ فِيْهَا وَلَا فِيْ وَلَدِهَا نو وينځه دَ پلار ام ولده نه شوه او نه به په پلار قيمت واجب وی نه په وينځه كي نه دَ دي په ولد كي لِأَنَّهُ لَمْ يَمْلِكْهُمَا ځكه چي پلار دَ دي مالك نه شو وَعَلَيْهِ الْمَهْرُ لِالْتِزَامِهِ بِالنِّكَاحِ او په پلار مهر دي دَ التزام كاوه دَ نكاح په وجه

**تشریح:-** دا عبارت د امام شافعي رحمه الله د دلیل ځواب دادي.حاصل دځواب دادي.چه د پلار نه د زنا حد، د ملك د شبه په وجه ساقطيږي .په ظاهر د حدیث [أنت ومالك لأبيك] باندي د عمل کاوه په وجه.
بهرحال هرکله چي د خوی وینځه د پلار د ملك نه خالی ده.نود پلار نکاح به درست وی .هرکله چي د پلار نکاح درست شوه.نو دده اوبه د نکاح په وجه محفوظ شوي.نود پلار لپاره د ملك یمین ثابتولو هیڅ اړتیا نشته.او هرکله چي د پلار لپاره د خوی په وینځه کي ملك یمین نه ثابتيږي . نودا وینځه به د پلار ام ولد هم نه وی .او په پلار به نه د وینځي قیمت واجب وی .اونه ددې د بچو، ځکه چي پلار د دواړو مالك نه دي.خو په پلار به مهر لازم وی .ځکه چي ده دنکاح په ذریعه د مهر التزام کړي دي.

**وَوَلَدُهَا حُرٌّ** .او بچي دَ وینځي به آزاد وی **لِأَنَّهُ مَلَكَهُ أَخُوهُ** ځکه چي دَ ده رور دَ ده مالك دي **فَيُعْتَقُ عَلَيْهِ بِالْقَرَابَةِ** نو آزاد شو په ده باند دَ قرابت په وجه .

**تشریح:-** او ددې وینځي نه چي د پلار د نطفي نه کوم بچي پیدا شي .هغه به آزاد وی .ځکه چي د وینځي بچي د مولا ملك وی .او دلته کي مولا ددې بچي رور دي.نود قرابت په وجه به دا ماشوم په خپل مولا (رور)باندي آزاد وی .د حدیث[من ملك فمارحم محرم متفق علیه] په وجه.

### د آزادي ښځي خپل خاوند غلام آزادولوسره د نکاح حکم

**قَالَ وَإِذَا كَانَتِ الْحُرَّةُ تَحْتَ عَبْدٍ** که آزاده ښځه دَ غلام لاندي وه **فَقَالَتْ لِمَوْلَاهُ أَعْتِقْهُ عَنِّي بِأَلْفٍ** نو دي دَ هغه آقا ته او وي چي دي آزاد کړه ځما دَ اړخ نه په هزار درهم **فَفَعَلَ فَسَدَ النِّكَاحُ** نو هغه داسي اوکړل نو نکاح يې فاسد شو **وَقَالَ زُفَرُ رَحِمَهُ اللهُ: لَا يَفْسُدُ** او زفر رحمه الله فرمائي چي فاسد نه دي

**تشریح:-** صورت د مسئلي دادي.چه یوه آزاده ښځه د یوغلام منکوحه ده.ښځي دخپل غلام خاوند مولا ته اوونیل.چه دا غلام زما داړخه د زر روپو په عوض آزادکړه.مولا اوونیل.ما آزادکړلو.نوپه دې صورت کي د آیمه ثلاثه رحمهم الله په نیزنکاح فاسد شوه.اود امام زفر رحمه الله په نیزفاسد نه ده.

**وَأَصْلُهُ أَنْ يَقَعَ الْعِتْقُ عَنِ الْآمِرِ عِنْدَنَا حَتَّى يَكُونَ الْوَلَاءُ لَهُ** او اصل په دې کي دا دي چي زموږ په نزد آزادی دَ امر دَ اړخ نه واقع کيږي تر دې چي ولاء به ده لره وی **وَلَوْ نَوَى بِهِ الْكَفَّارَةَ** او که امر په دې سره دَ کفارې نیت او کړو **يَخْرُجُ عَنْ عُهْدَتِهَا** نو کفاره به يې دَ ذمي نه اوځي **وَعِنْدَهُ يَقَعُ عَنِ الْمَأْمُورِ** او دَ زفر رحمه الله په نزد واقع کيږي دَ مامورنه

**تشریح:-** د اختلاف بنا (بنیاد) هم دادي.چه زموږ په نیز آزادی د آمر یعني د حره د اړخه واقع شویده.تردې چي ولایت به هم د آمر لپاره وی .او که آمر په دې آزادئ سره د کفاره نیت کړي وی .نود آمر داړخه به کفاره ادا شی .او آمر به د کفارې د ذمه وارئ نه خلاص شی .اود امام زفر رحمه الله د اړخه به آزادی د مامور(مولا) د اړخه واقع شی .

**لِأَنَّهُ طَلَبَ أَنْ يُعْتِقَ الْمَأْمُورُ عَبْدَهُ عَنْهُ، وَهَذَا مُحَالٌ** ځکه چي آمر دَ اړخ نه آزاد کړی او دا محال دي **لِأَنَّهُ لَا عِتْقَ فِيمَا لَا يَمْلِكُهُ ابْنُ آدَمَ فَلَمْ يَصِحَّ الطَّلَبُ** ځکه چي په هغې شی کي آزادی نشته دَ کوم چي بنده مالك نه وی نو طلب صحیح نه شو **فَيَقَعُ الْعِتْقُ عَنِ الْمَأْمُورِ** په دې وجه آزادی به دَ مامور دَ اړخ نه واقع وی

**تشریح:-** د امام زفر رحمه الله دلیل دادي.چه آمر یعني حره د خپل خاوند د مولا نه ددې خبرې درخواست اوکړو. چي دې خپل غلام ددې داړخه آزاد کړی .اودا امر محال دي.ځکه چي سړې د کوم شی مالك نه وی .په هغې کي دده داړخه آزادی نه واقع کيږي .نود آمر یعني د حره د آزادئ درخواست کول صحیح نه دی .نود غلام دا آزادی به د مامور د اړخه واقع وی .د آمر د اړخه به واقع نه وی .

**وَلَنَا أَنَّهُ أَمْكَنَ تَصْحِيحُهُ بِتَقْدِيمِ الْمِلْكِ بِطَرِيقِ الْاِقْتِضَاءِ** زموږ دلیل دا دې چي دَ دې تصحیح ممکن ده په تقدیم دَ ملك سره په طریق دَ اقتضاء **إِذِ الْمِلْكُ شَرْطٌ لِصِحَّةِ الْعِتْقِ عَنْهُ** ځکه چي دَ امر د اړخ نه ملك شرط دې دَ صحت دَ عتق دَ



پاره **فَيَصِيرُ قَوْلُهُ أَعْتِقْ طَلَبَ التَّمْلِيكِ مِنْهُ بِالْأَلْفِ** نو شي به دَ امر قول اعتق دَ مامور دَ اړخ نه تملیك لره طلب کول د هزارو په عوض **ثُمَّ أَمْرَهُ بِإِعْتَاقِ عَبْدِ الْآمِرِ عَنْهُ** بیا دَ ده حکم ور کول دَ امردَ اړخ نه دَ غلام آزادَ ولو شی **وَقَوْلُهُ أَعْتَقْتُ تَمْلِيكٌ مِنْهُ** او دَ مامور قول اعتقت امر لره به مالك جوړول شی **ثُمَّ الْإِعْتَاقُ عَنْهُ** بیا دَ دهٔ دَ اړخ څخه به آزادولي شی **وَإِذَا ثَبَتَ الْمِلْكُ لِلْآمِرِ** او کله چي دَ امر لپاره ملك ثابت شو **فَسَدَ النِّكَاحُ لِلتَّنَافِي بَيْنَ الْمِلْكَيْنِ**. نو نکاح فاسد شو د وجهي دَ منافات نه په مابین دَ دوو ملکو نوکي ،

**حل اللغة:** ① **امکن:** ممکن ده ② **تصحیح:** صحیح کول ③ **الاعتاق:** آزادول ]

**تشریح:-** زموږ دلیل دادي.چه د آمرکلام د لغو نه د بچ کاوه لپاره به ددې د صحیح کولو کوښښ کولي شي په داسي حال کي چي د آمرکلام صحیح کول هم ممکن دی .په دې طریقه چي د آمر د اقتضاء لپاره ملك مقدم اومنلي شی . ځکه چي د عتق د صحت لپاره ملك شرط دي.اوس به د آمر یعني د حره د قول[أعتقه عنی بالف] تقدیری عبارت داسي وی .[بعه عنی بالف ثم کن وکیلی بالإعتاق] یعني زما په لاس داغلام د زرو په عوض خرڅ کړه.بیا زما د اړخه وکیل شه.اودا آزاد کړه.په ځواب کي د مولا قول د [اعتقت] تقدیرعبارت به داسي وی [بعتك وإعتقته عنك] یعني ماپه تا درخرڅ کړو.او ستا د اړخه مي آزاد کړو.نو هرکله چي اقتضاء بیع اومونډلي شوه.نود آمر یعني د حره لپاره ملك ثابت شو.نود ملك نکاح اود ملك یمین په مینځ کي د منافات په وجه نکاح فاسد شوه.

① زموږ په دلیل باندي یو اعتراض کیدلي شی .هغه داکه مامور(مولا) د بیع صراحت کړي وي.او داسي ئې ونیلی وو.چه [بعت وإعتقت] نو په اتفاق به آزادی د مامور د اړخه واقع شوې وه.ځکه چي د آمر د اړخه د بیع قبولیت موجود نشو.نو هرکله چي د بیع د صراحت په صورت کي د آمر د اړخه آزادی واقع نشوه.نو اقتضاء به د بیع په صورت کي په درجه اولی د آمر د اړخه آزادی نه واقع کيږي .ځواب* ډیر ځله شئ ضمناً ثابتيږي .اګرچه صراحتاً نه ثابتيږي .مثلاً دمور په رحم کي د جنین بیع دمور تابع کيږي .او ضمناً ثابتيږي .او قصداً نه ثابتيږي .

② دوهم اشکال دادي.چه اګرچه د آمر لپاره ملك یمین ثابت شو.خو ددې باوجود نکاح فاسدول نه دی پکار.په دوي [دوه] وجوهو سره.

یوه وجه داده.چه دلته کي د آمر لپاره ځنګه ملك ثابت شي .فوراً به د اعتاق د حکم په وجه زائل شی .او داسي قسمه ملك دنکاح مفسد نه وی .مثلاً وکیل بالشراء هرکله د خپل مؤکل لپاره خپله منکوحه واخستله.نود وکیل نکاح فاسد نشوه.ځکه چي د وکیل لپاره ځنګه ملك ثابت شی .فوراً زائل شی .

د دې امله ځواب دادي.چه ملك په ابتداء کي دمؤکل لپاره ثابتيږي .د وکیل لپاره نه ثابتيږي .لکه ځنګه چي د شمس الائمه رحمه الله غوره مذهب دي.نود وکیل د نکاح فاسدیدلو دسره سوال نه پیداکيږي .(فتح القدیر والکفایه)

دویمه وجه دا ده چي دلته کي د آمر لپاره ملك اقتضاءً ثابت دي.اوکوم شی چي اقتضاءً ثابتيږي .هغه ضرورةً ثابتيږي .او کوم څیزچه ضرورةً ثابتيږي .هغه د اړتیا په اندازه ثابتيږي .او اړتیا په دې پوره کيږي .چه د آمر د اړخه آزادي واقع شي .نودا ملك یمین به د نکاح فساد اړخ ته نه متعدی کيږي .

د دې امله ځواب دادي.چه کله شئ ثابتيږي .نود ټولو لوازمو سره ثابتيږي .اود نکاح فساد هم د ملك په لوازموکي یو لازم دي.نو نکاح به فاسد وی .

### د آزادي ښځي خپل خاوند غلام بغیر د عوض نه دده په مولا باندي آزادول اود نکاح حکم

**وَلَوْ قَالَتْ أَعْتِقْهُ عَنِّي وَلَمْ تُسَمِّ مَالًا** او که چي دا ئې او وې چي دې ځما دَ اړخ نه آزاد کړه او مال يې ذکر نه کړو **لَمْ يَفْسُدِ النِّكَاحُ** نکاح به فاسد نه وی **وَالْوَلَاءُ لِلْمُعْتِقِ** او ولاء به دَ معتق دَ پاره وی **وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ** رحمهما الله

(١) دا د طرفينو رحمهما الله په نزد ده

تشريح:- صورت د مسئلې داده چه آزادې ښځې د خپل غلام خاوند مولا ته اوونيل.چه دې زما د اړخه آزاد كړه.او د مال ذكر ئې اونكړو.نود طرفينو رحمهما الله په نيز به نكاح فاسد نه وى .او ولاء به د معتق يعنى مولا لپاره وى .

**وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ رحمه الله هَذَا وَالْأَوَّلُ سَوَاءٌ** امام ابويوسف رحمه الله فرمائى چې دا او اوله برابر دى **لِأَنَّهُ يُقَدِّمُ التَّمْلِيكَ بِغَيْرِ عِوَضٍ تَصْحِيحًا لِتَصَرُّفِهِ** ځكه چې تمليك بلا عوض به مقدم كولاى شى تصرف دَ امر لره صحيح جوړولو دَ پاره **وَيَسْقُطُ اعْتِبَارُ الْقَبْضِ** او دَ قبضې اعتبار بۀ ساقط شى

تشريح:- او امام ابويوسف رحمه الله فرمائى .چه دامسئله او ړومبۍ دواړه يو شان دى .يعنى لكه څنګه چې په اوله مسئله كي آزادى د آمر د اړخه واقع شوې وه.او نكاح فاسد شوې وه.دغه ډول په دې مسئله كي به هم آزادى د آمر(حره) د اړخه واقع وى .اونكاح به فاسد وى .

د امام ابويوسف رحمه الله دليل دادې.چه لكه څنګه په ړومبۍ مسئله كي د عاقل كلام د لغوكولونه د بچ كاوه لپاره تمليك بالعوض يعنى بيع اقتضاءً مقدر منلې شوې وه.دغه ډول په دې مسئله كي آمرچه عاقل دې.دده د تصرف صحيح جوړولو لپاره تمليك بلاعوض، يعنى هبه به اقتضاءً مقدر منلې شى .او تقديرى عبارت به داوى .چه آزادې ښځې د غلام مولا ته اوونيل.چه ړومبې دا غلام زما لپاره هبه كړه.بيا زما داړخه وكيل جوړشه.او دې آزاد كړه.مولا اوونيل.چه ماداسې اوكړل.يعنى اول مې دا غلام تاته هبه كړلو.بيا ستا د اړخه وكيل جوړشوم.او آزاد مې كړلو.ددې تقرير نه دا خبره ښكاره شوه.چه د غلام آزادى د آمر(حره) د اړخه واقع شوې ده.اونكاح هم فاسد شوه.

د امام ابويوسف رحمه الله په دليل باندې زيات نه زيات دا اعتراض كيدلې شى .چه د هبه لپاره قبضه شرط ده.اوپه ذكر شوى صورت كي موهوب له يعنى د آمر د اړخه قبضه موجود شوې نه ده.نودا هبه به څنګه تام وى .

ځواب* په اوله مسئله كي د آمر د اړخه قول،چه دا دبيع ركن دې.دا ساقط كړې شو.نو قبضه چې د هبه لپاره شرط دې.ددې ساقطول به په درجه اولى ممكن وى .نولكه څنګه چې په اوله مسئله كي بغير د قبول نه بيع تمام شوې وه.دغه ډول به په دې مسئله كي بغير د قبضه نه هبه تام شى .

**كَمَا إِذَا كَانَ عَلَيْهِ كَفَّارَةُ ظِهَارٍ فَأَمَرَ غَيْرَهُ أَنْ يُطْعِمَ عَنْهُ.** لكه هركله چې په دۀ كفاره دَ ظهاروى او هغه بل چاته دَ خپل اړخ ته دَ خوراك ور كاوه امر او كړى

تشريح:- دا داسې ده.لكه چې په يوكس باندې كفاره د ظهار واجب وى .ده بل ته حكم اوكړو.چه زما د اړخه شپيتو مسكينانو باندې خوراك اوكړه.ددې هم دا معنى ده.چه اول ماته خوراك هبه كړه.بيا ئې زما د اړخه مسكينانو ته ادا كړه. نوكه مامور داسې اوكړل.نو په اتفاق به دا كفاره اداشى .حالانكه په دې هبه كي قبضه نه ده موجود شوې.نو لكه څنګه چې دلته كې د قبضه شرط ساقط شو.اوهبه صحيح شوه.دغه ډول به په دې مسئله كي هم وى .چه د قبضه شرط ساقط شو.او غلام هبه شو.بيا مولا د ښځې د اړخه آزاد كړلو.نونكاح فاسد شوه.

**وَلَهُمَا أَنَّ الْهِبَةَ مِنْ شَرْطِهَا الْقَبْضُ بِالنَّصِّ** دَ طرفينو رحمهما الله دليل دا دې چې دَ هبې دَ پاره قبضه شرط ده په نص سره **فَلَا يُمْكِنُ إِسْقَاطُهُ** نو دَ دې ساقطول ممكن نه دى **وَلَا إِثْبَاتُهُ اقْتِضَاءً** او دې لره اقتضاء هم ثابتول ممكن نه

(١) القول الراجح هو قول الطرفين رحمهما الله كذا فى فتح القدير(٣\٢٨٢) وردالمحتار(٣\٤١٨) والبحر(٣\٣٦٠) والهندية (١\٣٣٧) نقلاً عن القول الراجح (١\٢٩٤)-



**لِأَنَّهُ فِعْلٌ حِسِّيٌّ، بِخِلَافِ الْبَيْعِ لِأَنَّهُ تَصَرُّفٌ شَرْعِيٌّ** ځكه چې قبضه فعل حسى دې په خلاف دَ بيع نه چې دغه تصرف شرعى دې

تشريح:- د طرفينو رحمهما الله دليل دادې.چه دهبه لپاره قبضه شرط ده.دحديث[لاتصح الهبة إلا مقبوضة] په وجه او قبضه ساقطول هم ممكن نه دى .ځكه چې تبعاً هم هغه شى ساقطيږى .كوم چې د سقوط احتمال لرى او د هبه په قبضه كي په هيڅ حال كي د سقوط احتمال نه لرى .په خلاف د ركن د بيع،چه دا د سقوط احتمال لرى .لكه چې په بيع د تعاطى كي آيجاب اوقبول دواړه ساقطيږى .نو ،قبضه فى الهبة، د بيع په ركن باندې قياس كول درست نه دى .او قبضه اقتضاءً ثابتول هم ممكن نه دى .ځكه چې قبضه فعل حسى دې.اوفعل حسى د قبول د جنس څخې نه دې.نود [اعتقت] په ضمن كي قبضه ثابتول ممكن نه دى .په خلاف د بيع،ځكه چې په بيع كي تصرف شرعى دې.دا د [اعتقت] په ضمن كي ثابتول صحيح دى .

**وَفِي تِلْكَ الْمَسْأَلَةِ الْفَقِيرُ يَنُوبُ عَنِ الْآمِرِ فِي الْقَبْضِ،** او په دې مسئله كي به فقير په قبضه كي دَ امير نائب شى پاتې شو **أَمَّا الْعَبْدُ فَلَا يَقَعُ فِي يَدِهِ شَيْءٌ لِيَنُوبَ عَنْهُ** نو عبد دَ هغه په قبضه كي څه شې نه واقع كيږى چې دې دَ امر دَ اړخ نه نائب شى .

تشريح:- په دې عبارت سره د امام ابويوسف رحمه الله د قياس ځواب وركوى .دځواب حاصل دادې.چه هركله هغه كس په چاچه د ظهار كفاره ده. دوهم كس ته حكم اوكړو.چه دې زما داړخه فقير ته خوراك وركړى .مامور فقير ته خوراك وركړلو.نو په دې صورت كي به فقير د آمر داړخه نائب وى .او قبضه به كوى .لكه چې فقيرته كله زكاة وركړې شى .نودې د الله جل جلاله د اړخه نائب وى .اوقبضه كوى .بيا دخپل خان لپاره قبضه كوى .نوپه دې صورت كي هبه بغير د قبضه نه پاتې نشوه.او پاتې شو غلام،نو مامور چې كله دې آزادكړلو.نو دده په قبضه كي هيڅ شى نه واقع كيږى .چه دا غلام د آمر د اړخه نائب جوړشى .نو په دې صورت كي هبه بلاقبضه شوه.نو هركله چې فقير په قبضه كي نائب دې.نو په يوبل باندې قياس كول هم صحيح نه دى .

## باب نكاح أهل الشرك

ژباړه:- (دا)باب د مشركينو د نكاح (په بيان كښې) دې .

### د مشرك تعريف

**وَإِذَا تَزَوَّجَ الْكَافِرُ بِلَا شُهُودٍ** او هر كله چې نكاح او كړه كافر دَ ګواهانو نه په غير **أَوْ فِي عِدَّةِ كَافِرٍ** يا دَ كافر په عدت كي **وَذَلِكَ فِي دِينِهِمْ جَائِزٌ** او دا دَ دوى په دين كي جائز وه **ثُمَّ أَسْلَمَا** بيا دواړه مسلمانان شول **أُقِرَّا عَلَيْهِ** نو په دغې نكاح به ساتلې شى **وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ** (١) او دا دَ امام ابوحنيفه رحمه الله په نزد ده

تشريح:- يوكافر د كافرې ښځې سره بغير د ګواهانو نه نكاح اوكړله.يا د يوكافر په عدت كي وه.دهغې سره ئې نكاح اوكړله.اودا ددوى په دين كي جائز هم دى .بيا دواړه مسلمانان شو.نوپه دې اړه كي د امام ابوحنيفه رحمه الله مذهب دادې.چه دواړه به په تيرشوى مذهب باندې پاتې ساتلې شى .

**وَقَالَ زُفَرُ رحمه الله النِّكَاحُ فَاسِدٌ فِي الْوَجْهَيْنِ** او زفر رحمه الله فرمائى چې نكاح ئې فاسده ده په دواړو صورتونو كښې: **إِلَّا أَنَّهُ لَا يُتَعَرَّضُ لَهُمْ قَبْلَ الْإِسْلَامِ وَالْمُرَافَعَةِ إِلَى الْحُكَّامِ** مګردَ اسلام راوړو او حاكمانو ته د مقدمۀ اوړلونه مخكې به دوى ته څۀ نشى وئيلې

تشريح:- او امام زفر رحمه الله فرمائى .چه په دواړه صورتونوكي نكاح فاسد ده.البته ددوى سره به تعرض نشى كولې.تردې چې دوى مسلمانان شى .يا يومسلمان عادل حاكم ته مرافعه اوكړى .

(١) القول الراجح هو قول أبى حنيفة رحمه الله كذا فى رد المحتار(٢\٤١٩) والهندية (١\٣٣٧) نقلاً عن القول الراجح (١\٢٩٦)

(۱) دا د طرفینو رحمهما الله په نزد ده.

تشریح:- صورت د مسئلي دادي.چه آزادي ښځې د خپل غلام خاوند مولا ته اوونیل.چه دې زما د اړخه آزاد کړه.او د مال ذکر ئې اونکړو.نو د طرفینو رحمهما الله په نیز به نکاح فاسد نه وی .او ولاء به د معتق یعنی مولا لپاره وی .

وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ رحمه الله هٰذَا وَالْأَوَّلُ سَوَاءٌ امام ابویوسف رحمه الله فرمائی چې دا او اوله برابر دی لِأَنَّهُ يُقَدِّمُ التَّمْلِيكَ بِغَيْرِ عِوَضٍ تَصْحِيحًا لِتَصَرُّفِهِ څکه چې تملیك بلا عوض به مقدم کولای شی تصرف دَ امر لره صحیح جوړولو دَ پاره وَيَسْقُطُ اعْتِبَارُ الْقَبْضِ او دَ قبضې اعتبار به ساقط شی

تشریح:- او امام ابویوسف رحمه الله فرمائی .چه دامسئله او ړومبۍ دواړه یو شان دی .یعنی لکه څنګه چې په اوله مسئله کي آزادی د آمر د اړخه واقع شوې وه.او نکاح فاسد شوې وه.دغه ډول په دې مسئله کي به هم آزادی د آمر(حره) د اړخه واقع وی .اونکاح به فاسد وی .

د امام ابویوسف رحمه الله دلیل دادې.چه لکه څنګه په ړومبۍ مسئله کي د عاقل کلام د لغوکولونه د بچ کاوه لپاره تملیك بالعوض یعنی بیع اقتضاءً مقدر منلې شوې وه.دغه ډول په دې مسئله کي آمرچه عاقل دې.دده د تصرف صحیح جوړولو لپاره تملیك بلاعوض، یعنی هبه به اقتضاءً مقدر منلې شی .او تقدیری عبارت به داوی .چه آزادې ښځې د غلام مولا ته اوونیل.چه ړومبې دا غلام زما لپاره هبه کړه.بیا زما د اړخه وکیل جوړشه.او دې آزاد کړه.مولا اوونیل.چه ماداسې اوکړل.یعنی اول مې دا غلام تاته هبه کړلو.بیا زما د اړخه وکیل جوړشوم.او آزاد مې کړلو.ددې تقریر نه دا خبره ښکاره شوه.چه د غلام آزادی د آمر(حره) د اړخه واقع شوې ده.اونکاح هم فاسد شوه.

د امام ابویوسف رحمه الله په دلیل باندې زیات نه زیات دا اعتراض کیدلې شی .چه د هبه لپاره قبضه شرط وی .

ځواب* په اوله مسئله کي د آمر د اړخه قبضه موجود شوې نه ده.نودا هبه به څنګه تام شی .

ځواب* په اوله مسئله کي د آمر د اړخه قبول،چه دا دبیع رکن دې.دا ساقط کړې شو.نو قبضه چې د هبه لپاره شرط دې.ددې ساقطول به په درجه اولی ممکن وی .نولکه څنګه چې په اوله مسئله کي بغیر د قبول نه بیع تمام شوې وه.دغه ډول به په دې مسئله کي بغیر د قبضه نه هبه تام شی .

كَمَا إِذَا كَانَ عَلَيْهِ كَفَّارَةُ ظِهَارٍ فَأَمَرَ غَيْرَهُ أَنْ يُطْعِمَ عَنْهُ. لکه هرکله چې په ده کفاره دَ ظهاروی او هغه بل چاته دَ خپل اړخ ته دَ خوراك ور کاوه امر او کړی

تشریح:- دا داسې ده.لکه چې په یوکس باندې کفاره د ظهار واجب وی .ده بل ته حکم اوکړو.چه زما د اړخه شپیتو مسکینانو باندې خوراك اوکړه.ددې هم دا معنی ده.چه اول ماته خوراك هبه کړه.بیا ئې زما د اړخه مسکینانو ته ادا کړه. نوکه مامور داسې اوکړل.نو په اتفاق به دا کفاره اداشی .حالانکه په دې هبه کي قبضه نه ده موجود شوې.نو لکه څنګه چې دلته کي د قبضه شرط ساقط شو.اوهبه صحیح شوه.دغه ډول به په دې مسئله کي هم وی .چه د قبضه شرط ساقط شو.او غلام هبه شو.بیا مولا د ښځې د اړخه آزاد کړلو.نونکاح فاسد شوه.

وَلَهُمَا أَنَّ الْهِبَةَ مِنْ شَرْطِهَا الْقَبْضُ بِالنَّصِّ دَ طرفینو رحمهما الله دلیل دا دې چې دَ هبې دَ پاره قبضه شرط ده.[...] سره فَلَا يُمْكِنُ إِسْقَاطُهُ نو دَ دې ساقطول ممکن نه دی وَلَا إِثْبَاتُهُ اقْتِضَاءً او دې لره اقتضاء هم ثابت[...]

(۱) القول الراجح هو قول الطرفین رحمهما الله کذا فی فتح القدیر(۳\۲۸۲) وردالمحتار(۳\۴۱۸) والبحر(۳\۳۶۰) وا[...]
القول الراجح (۱۱\۲۹۴)-



[...] دې لِأَنَّهُ فِعْلٌ حِسِّيٌّ، بِخِلَافِ الْبَيْعِ لِأَنَّهُ تَصَرُّفٌ شَرْعِيٌّ څکه چې قبضه فعل حسی دې په خلاف دَ بیع نه چې دغ[...] تصرف شرعی دې

تشریح:- د طرفینو رحمهما الله دلیل دادې.چه دهبه لپاره قبضه شرط ده.دحدیث[لاتصح الهبة إلا مقبوضة] په وجه[...] قبضه ساقطول هم ممکن نه دی .څکه چې تبعاً هم هغه شی ساقطیږی .کوم چې د سقوط احتمال لری [...] هبه په قبضه کي په هیڅ حال کي د سقوط احتمال نه لری .په خلاف د رکن د بیع،چه دا د سقوط احتمال لر[...] .لکه چې په بیع د تعاطی کي آیجاب اوقبول دواړه ساقطیږی .نو ،قبضه فی الهبة، د بیع په رکن باند[...] قیاس کول درست نه دی .او قبضه اقتضاءً ثابتول هم ممکن نه دی .څکه چې قبضه فعل حسی دې.اوفع[...] حسی د قبول د جنس څخې نه دې.نود [اعتقت] په ضمن کي قبضه ثابتول ممکن نه دی .په خلاف د بیع،څ[...] چې په بیع کي تصرف شرعی دې.دا د [اعتقت] په ضمن کي ثابتول صحیح دی .

وَفِي تِلْكَ الْمَسْأَلَةِ الْفَقِيرُ يَنُوبُ عَنِ الْآمِرِ فِي الْقَبْضِ، او په دې مسئله کي به فقیر په قبضه کي دَ امیر نائب شی [...] أَمَّا الْعَبْدُ فَلَا يَقَعُ فِي يَدِهِ شَيْءٌ لِيَنُوبَ عَنْهُ نو عبد دَ هغه په قبضه کي څه شې نه واقع کیږی چې دې دَ امر د[...] شو نه نائب شی .

تشریح:- په دې عبارت سره د امام ابویوسف رحمه الله د قیاس ځواب ورکوی .دځواب حاصل دادې.چه هرکله [...] کس په چاچه د ظهار کفاره ده. دوهم کس ته حکم اوکړو.چه دې زما داړخه فقیر ته خوراك ورکړی .م[...] فقیر ته خوراك ورکړلو.نو په دې صورت کي به فقیر د آمر داړخه نائب وی .او قبضه به کوی .لکه[...] فقیرته کله زکاة ورکړې شی .نودې د الله جل جلاله د اړخه نائب وی .اوقبضه کوی .بیا دخپل ځان لپاره قبضه[...] .نوپه دې صورت کي هبه بغیر د قبضه نه پاتې نشوه.او پاتې شو غلام،نو مامور چې کله دې آزاد کړ[...] دده په قبضه کي هیڅ شی نه واقع کیږی .چه دا غلام د آمر د اړخه نائب جوړشی .نو په دې صورت ک[...] بلاقبضه شوه.نو هرکله چې فقیر په قبضه کي نائب دې.نو په یوبل باندې قیاس کول هم صحیح نه دی .

## باب نکاح أهل الشرك

ژباړه:- (دا)باب د مشرکینو د نکاح (په بیان کښې) دې.

### د مشرك تعریف

وَإِذَا تَزَوَّجَ الْكَافِرُ بِلَا شُهُودٍ او هر کله چې نکاح او کړه کافر دَ ګواهانو نه په غیر أَوْ فِي عِدَّةِ كَافِرٍ یا دَ [...] عدت کي وَذٰلِكَ فِي دِينِهِمْ جَائِزٌ او دا دَ دوی په دین کي جائز وه ثُمَّ أَسْلَمَا بیا دواړه مسلمانان شول أُقِرَّا عَلَ[...] دغې نکاح به ساتلې شی [...] حنیفه رحمه الله په نزد ده

تشریح:- کافر د کافر [...] د یوکافر په عدت کي وه.دهغې [...] مسلمانان شو.نوپه دې اړه کي د امام اب[...] ساتلې شی [...]

[...] فرمائی چې نکاح ئې فاسده ده په دواړو صورتونو [...] لام راوړو او حاکمانو ته د مقدمه [...]

وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ رحمهما الله فِي الْوَجْهِ الْأَوَّلِ كَمَا قَالَ أَبُو حَنِيفَةَ رحمه الله، وَفِي الْوَجْهِ الثَّانِي كَمَا قَالَ زُفَرُ رحمه الله
صاحبين رحمهما الله په اول صورت کې د امام ابوحنيفه رحمه الله سره دی او په اويم صورت کې د زفر رحمه الله سره دی

تشریح:- صاحبين رحمهما الله فرمائي .چه په ړومبی صورت يعنی بغير د ګواهانو نه د نکاح په صورت کې هغه حکم دی.کوم چې امام صاحب رحمه الله فرمائيلی دی.اوپه دوهم صورت کې يعنی د کافرې معتده سره نکاح کاوه په صورت کې هغه حکم دی.کوم چې امام زفر رحمه الله فرمائيلی دی .

لَهُ أَنَّ الْخِطَابَاتِ عَامَّةٌ عَلَى مَا مَرَّ مِنْ قَبْلُ ..د زفر رحمه الله دليل دا دی چې خطابات عام دی لکه چې مخکې تير شو فَتَلْزَمُهُمْ نو دغه به کفارو ته هم ګډ وی وَإِنَّمَا لَا يَتَعَرَّضُ لَهُمْ لِدِيَانَتِهِمْ إِعْرَاضًا لَا تَقْرِيرًا او په وجه د ذمه به دوی ته تعرض نشی کولی اعراضاً نه چې د برقرارساتلو په وجه فَإِذَا تَرَافَعُوا أَوْ أَسْلَمُوا وَالْحُرْمَةُ قَائِمَةٌ وَجَبَ التَّفْرِيقُ او کله چې دوی مرافعه او کړه يا مسلمانان شول او حرمت قائم وو. نو واجب شو تفريق

تشریح:- امام زفر رحمه الله دليل دادی.چه دشرع خطابات عام دی .مثلا د الله تعالی قول دی.((وَلَا تَعْزِمُوا عُقْدَةَ النِّكَاحِ حَتَّىٰ يَبْلُغَ الْكِتَابُ أَجَلَهُ)) حتی يبلغ يعنی تاسو د نکاح اراده هم مه کوئ.تردې چې مقرره عدت خپل اختتام ته اورسی ، اود نبی کريم ﷺ قول [لانكاح إلا بشهود] ،بغير د ګواهانو نه نکاح نه کيږی ،نوحکم به هم علی العموم ثابت وی .اوچونکه خطابات عام دی .په دې وجه به داکافرانو ته هم لازم وی .البته د کافرانوسره به تعرض نشی کولې.ځکه چې ددوی سره د تعرض نه کولوعقد ذمه شوی دی.خودا تعرض نکول په دې وجه نه دی .چه موږ ددوی دا افعال درست ګڼړو.بلکه ددې نه اعراض کولې شی .او دوی سره به تعرض نشی کولې.لکه چې دوی بت پرستی کوی .او موږ د اعراض په طور دوی سره تعرض نه کوو.خوچه کله دوی خپله معامله مسلمان حاکم ته يوسی .يا اسلام قبول کړی .په داسې حالت کې چې حرمت د نکاح موجود وی.نو اوس په تفريق لازم وی .ځکه چې د الله تعالی ارشاد دی. ((فَاحْكُمْ بَيْنَهُمْ بِمَا أَنْزَلَ اللَّهُ وَلَا تَتَّبِعْ أَهْوَاءَهُمْ)) په آيت کې د((بَيْنَهُمْ)) ضمير کافرانو اړخ ته راجع دی.ژباړه به دا وی .،اوته فيصله اوکړه.د کافرانو په مينځ کې هم ددې مطابق کوم چې الله تعالی نازل کړی دی.او ددوی د خواهشاتو تابع داری مه کوه] ددې آيت نه معلوميږی .چه مسلمان حاکم به د شريعت مطابق فيصله ورکوی .

وَلَهُمَا أَنَّ حُرْمَةَ نِكَاحِ الْمُعْتَدَّةِ مُجْمَعٌ عَلَيْهَا د صاحبينو رحمهما الله دليل دا دی چې د معتدې د نکاح حراموالې مجمع عليه دی فَكَانُوا مُلْتَزِمِينَ لَهَا نو کفار به د دې التزام کوونکې وی وَحُرْمَةُ النِّكَاحِ بِغَيْرِ شُهُودٍ مُخْتَلَفٌ فِيهَا او د ګواهانو نه بغير د نکاح حرمت مختلف فيه دی وَلَمْ يَلْتَزِمُوا أَحْكَامَنَا بِجَمِيعِ الِاخْتِلَافَاتِ . او کفارو د ټولو اختلافاتو سره زموږ د احکامو التزام نه دی شوی.

تشریح:-د صاحبينو رحمهما الله دليل دادی.چه د معتدة الغير د نکاح حرمت متفق عليه دی.اوحرمت د نکاح ،بغير شهود ،مختلف فيه دی.ځکه چې امام مالك او ابن ابی ليلی د نکاح بغيرشهود د جواز قائل دی .اوکافرانو ذميانو زموږ د متفق عليه احکامو التزام کړی دی.خود مختلف فيه احکامو التزام ئې نه دی کړی.نود معتدة الغير نکاح حرمت چونکه متفق عليه دی.په دې وجه کافران ذميان په دې حکم کې د مسلمانانو تابع دی .اوچونکه د معتدة الغير سره د مسلمانانونکاح فاسد ده.په دې وجه دکافرانو ذميانو نکاح به هم فاسد وی .اوپه سلمانيدلو،يا د مرافعه نه روسته به واجب التفريق وی .اود نکاح بغير شهود حرمت چونکه مختلف فيه دی.په دې وجه کافران ذميان به په دې حکم کې د مسلمانانو تابع نه وی .بلکه ددوی د مذهب مطابق به معتدة الغير سره نکاح درست وی .اود اسلام قبلولو نه روسته به په هم هغه تيره شوی نکاح باندې پاته ...

وَلَا ... الْحُرْمَةَ لَا تُمْكِنُ إِثْبَاتُهَا حَقًّا لِلشَّرْعِ د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دی چې حرمت لره حق د شرع



جوړول ثابتول ممکن نه دی لِأَنَّهُمْ لَا يُخَاطَبُونَ بِحُقُوقِهِ ځکه چې کفار د حقوقو د شرع مخاطب نه دی وَلَا وَجْهَ إِلَى إِيجَابِ الْعِدَّةِ حَقًّا لِلزَّوْجِ او د خاوند حق جوړولو په عوض عدت واجبولوهم څه وجه نشته لِأَنَّهُ لَا يَعْتَقِدُهُ ځکه چې خاوند د دې معتقد نه دی

تشریح:-د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادی.چه دحرمت په وجه به حرمت د نکاح د شارع د حق په اعتبار سره ثابتيږی . يا به د ښځې حق په اعتبارسره.اودا دواړه صورتونه ممکن نه دی .د شارع حق جوړول، او ثابتول خوځکه ممکن نه دی .چه کافران د شرع د حقوقومخاطب نه دی .اود خاوند حق جوړول،او عدت واجبول ځکه ممکن نه دی .چه خاوند دعدت د وجوب اعتقاد نه لری .

بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَتْ تَحْتَ مُسْلِمٍ په خلاف د هغې نه چې د مسلمان لاندې وی لِأَنَّهُ يَعْتَقِدُهُ ځکه چې مسلمان د دې معتقد دی وَإِذَا صَحَّ النِّكَاحُ فَحَالَةُ الْمُرَافَعَةِ وَالْإِسْلَامِ حَالَةُ الْبَقَاءِ او کله چې نکاح صحيح شونو د مرافعه او اسلام حالت د بقاء دی وَالشَّهَادَةُ لَيْسَتْ شَرْطًا فِيهَا او په حالت د بقاء کې شهادت شرط نه دی وَكَذَا الْعِدَّةُ لَا تُنَافِيهَا كَالْمَنْكُوحَةِ إِذَا وُطِئَتْ بِشُبْهَةٍ او دغه ډول عدت د حالت بقاء منافی نه دی لکه منکوحه چې په شبهه سره وطی شوې وی .

تشریح:- ددې په خلاف که څوك ذميه کتابيه د يومسلمان په نکاح کې وی .بيا مسلمان دې ته طلاق ورکړلو .نو په دې کتابيه باندې به د خاوند د حق په اعتبار سره عدت واجب وی .ځکه چې مسلمان د وجوب عدت معتقد دی.نو په عدت کې به ددې کتابيه نکاح درست نه وی .نو هرکله چې دعدت په وجه د نکاح د حرمت ثابتولو دوې [دوه] صورتونه دی .اودا دواړه ممکن نه دی .نود يوکافر نکاح به د بل کافر معتده سره صحيح وی .او هرکله چې نکاح صحيح ده.نو حالت مرافعه اود اسلام قبلولوحالت،حالت بقاء دی.اود بقاء په حالت کې شهادت شرط نه دی.هم دا وجه ده.که د نکاح نه روسته ګواهان مړه شو.نو نکاح نه باطليږی .اوهم دغه ډول عدت د حالت بقاء منافی نه دی.مثلاً د يوکس منکوحه سره ئې په دې خيال نکاح اوکړله.چه ددې خاوند مړشوی دی.او وطی هم شوی ده.ددې نه روسته معلومه شوه.چه دې ژوندې دی.نود ړومبئ نکاح پاته پاتې کيدلو باوجود به عدت واجب وی .نو ثابته شوه.چه عدت د نکاح د بقاء منافی نه دی.

## د مجوسی خپلې مور يالور سره د نکاح کولو نه روسته ايمان راوړل

فَإِذَا تَزَوَّجَ الْمَجُوسِيُّ أُمَّهُ أَوْ ابْنَتَهُ نو هر کله چې مجوسی د خپلې موريا لور سره نکاح او کړه ثُمَّ أَسْلَمَا بيائې اسلام راوړو فُرِّقَ بَيْنَهُمَا نو په دوی کې به تفريق کولای شی

تشریح:-صورت د مسئلې دادی.که يو آتش پرست دخپلې مور،يا لور يا په محارم ابديه کې ئې دکومې يوې کسې سره نکاح اوکړله.بيا دواړه مسلمانان شو.نوپه دې اړه کې د امام صاحب رحمه الله قول صحيح دادی.چه دا نکاح صحيح وه.اود عراق مشائخو په قول باطل وه.هم دا دصاحبينو رحمهما الله قول دی.خو په دې باندې واړه متفق دی .چه دمسلمانيدلونه روسته به په دواړوکې تفريق کولې شی .

لِأَنَّ نِكَاحَ الْمَحَارِمِ لَهُ حُكْمُ الْبُطْلَانِ فِيمَا بَيْنَهُمْ عِنْدَهُمَا ځکه چې د صاحبينو رحمهما الله په نزد نکاح د محارمود کفارو په نزد هم د بطلان حکم لری كَمَا ذَكَرْنَا فِي الْعِدَّةِ لکه چې موږ په معتده کې ذکر او کړو وَوَجَبَ التَّعَرُّضُ بِالْإِسْلَامِ او د اسلام راوړو په وجه ورته تعرض لازم شو فَيُفَرَّقُ. نو حکم د تفريق به کولې شی

تشریح:- دصاحبينو رحمهما الله دليل دادی.چه د محرمات ابديه نکاح پخپله دکافرانوبه مينځ کې د باطليدلو حکم لری .لکه څنګه چې موږ په معتدة الغيرکې ذکرکړی دی .يعنی په ړومبئ مسئله کې اوونيلی شو.چه د بل کس د معتدة نکاح حرمت متفق عليه دی.نوکافران ذميان به هم ددې التزام کونکی وی .او دغه ډول د مسلمانانو اجماع ده.چه دمحارم ابديه نکاح باطل ده.نو ذميان به هم ددې تابع وی .البته د

عقدِ ذمه په وجه دوی سره تعارض نشو کیدلي.خو هرکله چې دوی دواړه مسلمانان شول. نو اوس به د اسلام په حکم کي داخل وی .او اسلام چونکه د.محارم الابدیه، دنکاح منافی دې. ځکه د اسلام راوړلو په وجه به تعارض واجب وی .نو حاکم به په دواړوکي تفریق کوی .

**وَعِنْدَهُ لَهُ حُكْمُ الصِّحَّةِ فِي الصَّحِيحِ** او دَ امام ابوحنیفه رحمه الله په نزد دَ نکاح دَ محارمو دَ پاره دَ صحت حکم دې په صحیح قول کي

**تشریح:**-د امام صاحب رحمه الله دلیل دادې.چه د آتش پرست محارم الابدیه سره نکاح خو په اصل کي صحیح وه.او دصحت وجه هم داده.کومه چې وړاندې تیره شوه.چه حرمت به د شریعت د حق په وجه وی .یا د خاوند د حق په وجه.د شریعت دحق په وجه خوځکه نشی کیدلې.چه کافران د شریعت د حقوقو دسره مخاطب نه دی .نوګویا خطاب ددوی په حق کي دسره نازل شوې نه دې.ځکه چې دوی د مبلغ تکذیب کوی .اود رسول ﷺ درسالت انکار کوی .او پاتې شوه داخبره چې موږ ته په کافرانو باندې ولایت د الزام حاصل وی .نودا په دې وجه نشی کیدلې.چه ولایت د الزام یا د تورې په ذریعه حاصلیږی .یا د محاجه په ذریعه.اودا دواړه شیان (ځیزونه ) د عقدِذمه په وجه منقطع شو.نوموږ ته په دوی باندې ولایت د الزام نشی حاصلیدلې.بهرحال د شریعت دحق په وجه جرمت نه ثابتیږی .اود خاوند د حق په وجه ځکه نشی کیدلې.چه آتش پرست خاوند دسره ددې د حرمت اعتقاد نه لری .نود حرمت د ثبوت دوې [دوه] صورتونه وو.او دواړه ممکن نه دی .په دې وجه موږ وایو.چه ابتداءً د محارم ابدیه سره د آتش پرست نکاح درست ده.

**إِلَّا أَنَّ الْمَحْرَمِيَّةَ تُنَافِي بَقَاءَ النِّكَاحِ** مګر محرمیت دَ بقاء دَ نکاح منافی دې **فَيُفَرَّقُ بِخِلَافِ الْعِدَّةِ** په دې وجه به تفریق کولای شی په خلاف دَ عدت نه **لِأَنَّهَا لَا تُنَافِيهِ** ځکه چې ذمه دَ بقاء دَ ي نکاح منافی نه دې .

**تشریح:**- دا عبارت د یو سوال ځواب دې.سوال دادې.چه هرکله د امام صاحب رحمه الله په نیز دمحارم نکاح ابتداء صحیح ده.نود اسلام راوړلونه روسته هم پاته پاتې کیدل پکار دی .تفریق ولې واجب کړې شو؟
ځواب:کافر د اسلام راوړلونه روسته د شریعت د حقوقو مخاطب شو.او په شریعتِ اسلام کي محرمیت،چه څنګه ابتداءً د نکاح منافی دې.دغه ډول د نکاح د بقاء هم منافی دې.مثلاً یوې بالغي ښځې د صغیرسره دده د رضاعت په موده کي نکاح اوکړله.بیا دې ښځې دې صغیرته شیدې ورکړل.نودا دده رضاعی زوې شو.اوس به ددې ښځې نکاح باطل وی .او هرکله چې د اسلام راوړلو په وجه کافر د شریعت پابند شو.نو اوس به دده سره تعرض کول واجب وی .او حاکم به په دواړوکي تفریق کوی .په خلاف د عدت،ځکه چې عدت د نکاح د بقاء منافی نه دې.په دې وجه د معتدة الغیرنکاح د اسلام راوړلو نه روسته هم پاته ساتلې شوې ده.

## په مجوسی ښځه خاوند کي د یوکس اسلام راوړل

**ثُمَّ بِإِسْلَامِ أَحَدِهِمَا يُفَرَّقُ بَيْنَهُمَا** بیا په دوی کي دَ یو په مسلمانیدو به په دوی کي تفریق کولای شی **وَبِمُرَافَعَةِ أَحَدِهِمَا لَا يُفَرَّقُ عِنْدَهُ() خِلَافًا لَهُمَا** او دَ یو په مرافعه به تفریق نه شی کولې دَ امام ابوحنیفه رحمه الله په نزد په خلاف د صاحبینو رحمهما الله

**تشریح:**- صورت د مسئلې دادې.چه مجوسی په محارموکي د یوې کسې سره نکاح اوکړله.بیا په دې دواړوکي یوکس اسلام قبول کړلو.نو په اتفاق به په دواړو کي تفریق کولې شی .او که په دوی کي یوکس قاضی ته مرافعه اوکړله.(یعنی د اسلام حکم ئې طلب کړلو)نود امام صاحب رحمه الله په نیز به تفریق نشی کولې.اود

¹) القول الراجح هو قول أبی حنیفة رحمه الله کذا فی الکفایة (۲۸۵\۳) وردالمحتار(۴۲۰\۲) والهندیة (۳۳۷\۱) ومجمع الأنهر(۳۷۰\۱) نقلاً عن القول الراجح (۲۹۶\۱)-



صاحبینو رحمهما الله په نیز به تفریق کولې شی .

د صاحبینو رحمهما الله دلیل دادې.چه اصل نکاح خو باطل وه.خود عقدِذمه په وجه تعرض نشو کیدلې.نو هرکله چې په دې دواړوکي یوکس مرافعه، یعنې د اسلام حکم ئې طلب کړلو.اود اسلام د حکم مطیع شو.نو په دې دواړو کي به تفریق کولې شی .لکه مثلاً که په دې دواړوکي یوکس مسلمان شوې وو.نو بالاتفاق به تفریق کولې شو.نو په دې دواړوکي دیوکس مسلمانیدل داسې دی .لکه د دواړو مسلمانیدل .دغه ډول په دې دواړوکي د یوکس مرافعه کول داسې دی .لکه د دواړومرافعه کول.او ددې دواړو د مرافعه کاوه په صورت کي به بالاتفاق تفریق کولې شو.نود یوکس د مرافعه کولوپه صورت کي به هم تفریق کولې شی .

**وَالْفَرْقُ أَنَّ اسْتِحْقَاقَ أَحَدِهِمَا لَا يَبْطُلُ بِمُرَافَعَةِ صَاحِبِهِ الْمُسْلِمِ** او توپیر دا دې چې په استحقاق دَ یو دَ دهٔ دَ بل اندیوالان په مرافعه سره نه باطلیږی **إِذْ لَا يَتَغَيَّرُ بِهِ اعْتِقَادُهُ** ځکه چې دَ دهٔ په وجه دَ ده اعتقاد نه متغیر کیږی **أَمَّا اعْتِقَادُ الْمُصِرِّ بِالْكُفْرِ** پاتې شو دَ مصر بالکفر اعتقاد **لَا يُعَارِضُ إِسْلَامَ** نو دغه دَ مسلمان دَ اسلام نه شی معارض کیدای **لِأَنَّ الْإِسْلَامَ يَعْلُو وَلَا يُعْلَى()** ځکه چې اسلام غالب وی مغلوب کیږی نه

**تشریح:**-د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل،او په دې دواړوکي وجه د توپیر داده.چه اصل نکاح خوصحیح وه.او په دې دواړوکي دیوکس قاضی ته مرافعه کول، اود اسلام حکم طلب کول به د بل اندیوالان په خلاف دده د حق په باطلولوکي حجت نه وی .بلکه دده اعتقاد د بل کس د اعتقاد معارض دې.اود مرجح نه کیدلو په وجه به په یو بل باندې ترجیح هم نه وی .نود صحت حکم به په تیرشوی حالت باندې پاتې وی .ددې په خلاف چې هرکله په دې دواړوکي یوکس اسلام قبول کړلو.نو تفریق به کولې شی .ځکه چې اسلام غالب وی .مغلوب نه وی .نود ،مصر علی الکفر، اعتقاد د مسلمان د اسلام معارض نشی کیدلې.بلکه د مسلمان اسلام ته به ترجیح ورکولې شی .او په دواړوکي به تفریق کولې شی .

**وَلَوْ تَرَافَعَا** او که دواړو مرافعه او کړه **يُفَرَّقُ بِالْإِجْمَاعِ** نو تفریق به ئې کولای شی په اجماع سره **لِأَنَّ مُرَافَعَتَهُمَا كَتَحْكِيمِهِمَا** ځکه چې دَ دواړو مرافعه کول، پشان د تحکم د دواړو ده.

**حل اللغة:** ① **المرافعة**: قاضی ته مقدمه اوړل ② **تحکیم**: حاکم جوړول، فیصله کونکې جوړول]

**تشریح:**-او که دواړو قاضی ته مرافعه اوکړله.اود اسلام حکم ئې طلب کړلو.نو په اتفاق به تفریق کولې شی .ځکه چې ددې دواړو مرافعه کول داسې دی .لکه د دواړو یو دریم کس حکم جوړول.او که دې دواړو یوکس حکم جوړ کړې وو.او دهغه نه ئې د اسلام حکم طلب کړې وو.نود حکم لپاره جائز وو.چه په دې دواړوکي ئې تفریق کړې وو.نو قاضی د ولایت د عموم په وجه زیات مستحق دې.چه په دې دواړوکي تفریق اوکړی . هم دې اړخ ته د الله تعالی ارشاد دې.((فَاحْكُمْ بَيْنَهُمْ بِمَا أَنْزَلَ اللَّهُ)) نوکه دوی تاله راشی .نو ددوی په مینځ کي هم دهغه مطابق فیصله کوه.کوم چې الله تعالی نازل کړې دې،

## د مرتد مسلمانې یا کافرې سره نکاح کول

**وَلَا يَجُوزُ أَنْ يَتَزَوَّجَ الْمُرْتَدُّ مُسْلِمَةً وَلَا كَافِرَةً وَلَا مُرْتَدَّةً** او جائز نه دی دا چې نکاح او کړی مرتد دَ مسلمانې سره او نه دَ کافرې سره او نه دَ مرتدې سره **لِأَنَّهُ مُسْتَحِقٌّ لِلْقَتْلِ** ځکه چې دغه خو مستحق دَ قتل دې

**تشریح:**- صورت د مسئلې دادې.چه دمرتد لپاره اجازت نشته.چه دې مسلمانې ښځې، یاکافرې ښځې، یا مرتده ښځې سره نکاح اوکړی .دلیل دادې.چه مرتد د نفس ردت په وجه واجب القتل دې. ځکه چې د نبی

¹) قال الزیلعی رحمه الله لم یذکره المصنف رحمه الله تعالی حدیثاً مرفوع .. عن عمر بن الخطاب رضی الله عنه أخرجه الدار قطنی فی سننه (۲۵۲/۳) رقم ۳۰

کریم ﷺ قول دی.[من غیر دینه فاقتلوه] یعني کوم کس چې خپل دین بدل کړلو.دا قتل کړئ.

وَالْإِمْهَالُ ضَرُورَةُ التَّأَمُّلِ او مهلت ورکول د ارتیا د تامل په وجه دی وَالنِّكَاحُ يَشْغَلُهُ عَنْهُ او نکاح به ده لره د دې نه غافله کړي فَلَا يُشْرَعُ فِي حَقِّهِ نو د ده په حق کې نکاح مشروع نه دې

حل اللغة: ① الامهال: مهلت ورکول ② التامل: سوچ فکر کول ③ يشغل: مشغوله کیږي ]

تشریح:- دا عبارت دیوسوال ځواب دی.سوال دادې.چه مرتد چونکه واجب القتل دې.نو دې ته مهلت ورکول پکار نه دی ؟ ځواب: مرتد ته د درې ورځو مهلت په دې وجه ورکړې شوې دې.چه دې غور اوفکر اوکړي هغه شبهات لرې کړي .کوم چې ده ته د اسلام په اړه کې راپیښ شوي دی .او نکاح چونکه دې د غور او فکر نه غافل کوي .په دې وجه نکاح د مرتد په حق کې نه ده مشروع شوې.

ﷺ په دې دلیل به یو اعتراض وی .هغه داچه قاتل عمد هم قصاصاً واجب القتل دې.نو دده نکاح هم درست کیدل پکار نه دی .حالانکه د قاتل عمد لپاره نکاح جائز ده؟

ځواب: په قصاص کې عفو مستحب ده.لکه چې د الله تعالی ارشاد دی. ((فَمَنْ عُفِيَ لَهُ مِنْ أَخِيهِ شَيْءٌ فَاتِّبَاعٌ بِالْمَعْرُوفِ)) نو هر کله چې په قصاص کې عفومستحب ده.نوقاتل واجب القتل پاتې نشو. ددې په خلاف مرتد دې.ځکه چې په عامه توګه دې د خپل ارتداد نه رجوع نه کوي .په دې وجه چې دې د اسلام په خوبیانو باندې د خبریدلو نه روسته مرتد شوې دې.نوددې باوجود دده ارتداد دده په ګمان کې دځه قوي شبه په وجه دې.خو اشکال هم پاته دې.ځکه چې زاني محصن(چه دده زنا په بینه یا په اقرار سره ثابت شوې ده)واجب القتل دې.یعني سنګسارول اوهلاکول ئې ضروري دی .ددې باوجود دده نکاح درست ده.حالانکه ستاسو د بیان مطابق درست کیدل پکار نه دی ؟ ځواب ممکن دې.چه ګواهان د ګواهۍ نه رجوع اوکړي .او رجم واپس شي .

وَكَذَا الْمُرْتَدَّةُ لَا يَتَزَوَّجُهَا مُسْلِمٌ وَلَا كَافِرٌ دغه ډول د مرتدې سره به نه مسلمان نکاح کوي او نه کافر لِأَنَّهَا مَحْبُوسَةٌ لِلتَّأَمُّلِ ځکه چې دا محبوس ده د غوراو فکر د پاره وَخِدْمَةُ الزَّوْجِ تَشْغَلُهَا عَنْهُ او د خاوند خدمت به دې لره د دې نه غافله کړي وَلِأَنَّهُ لَا يَنْتَظِمُ بَيْنَهُمَا الْمَصَالِحُ او ځکه ۱ه د دوی په مینځ کې مصالح د نکاح برابریدې نه شي وَالنِّكَاحُ مَا شُرِعَ لِعَيْنِهِ بَلْ لِمَصَالِحِهِ او نکاح د ذات لپاره نه بلکه د مصالحو د پاره مشروع شوې دې .

تشریح:- اودغه ډول مرتده سره به نه مسلمان نکاح کوي .نه کافر.دلیل دادې.چه مرتده محبوس کولې شي .چه داغور اوفکر اوکړي .اوخپل شبهات لرې کړي .اود خاوند خدمت به دا دغور اوفکر نه غافله کړي په دې وجه ددې په حق کې نکاح مشروع نه کړې شوه. دوهم دلیل دادې.چه د نکاح مصالح ددوی دواړو په مینځ کې نه حاصلیږي .اونکاح لذاته نه ده مشروع شوې.بلکه د نکاح د مصلحتونو لپاره مشروع شوې ده.د نکاح مصلحتونه مثلاً سکني ، ازدواج، توالد اوتناسل وغیره.

**په ښځه خاوند کې که یوکس مسلمان وي.نود بچي د دین حکم**

فَإِنْ كَانَ أَحَدُ الزَّوْجَيْنِ مُسْلِمًا نو که یو په زوجینو کې مسلمان وه فَالْوَلَدُ عَلَى دِينِهِ نو بچې د ده په دین وي وَكَذَلِكَ إِنْ أَسْلَمَ أَحَدُهُمَا او دارنګ که په دوی کې یو مسلمان شو وَلَهُ وَلَدٌ صَغِيرٌ او دده وړکې بچې وه صَارَ وَلَدُهُ مُسْلِمًا بِإِسْلَامِهِ نو بچې به د ده اسلام په وجه سره مسلمان و

تشریح:- صورت د مسئلې دادې.که ،احد الزوجين، مسلمان وي .نو بچې به په دین اسلام باندې وي .په دې باندې د آیمه اربعه ﷺ اجماع ده.ددې صورت دادې.چه زوجین کافران دی .بیا ښځه مسلمانه شوه.یا سړې مسلمان شو.ددې نه روسته په آخر باندې د اسلام پیش کولونه وړاندې بچې پیدا شو.نو اوس به داماشوم په دین کې د مسلمان تابع وي .په دې شرط چې ماشوم او په،احد الزوجين، کې چې کوم یوکس مسلمان



دې.دواړه په یو کور کې وي .اوکه په کورونو کې تباین وي .په دې طریقه چې مسلمان پلار په داراسلام کې وي .او بچې په دارحرب کې وي .یا ددې په عکس وي .نو بچې به د خپل پلار د اسلام په وجه مسلمان نشي شمارلې. دوهم صورت دادې.چه احد الزوجين مسلمانان شو.او دده یوصغیر بچې دې.نودا بچې به د احدالزوجين د اسلام په وجه مسلمان وي .

لِأَنَّ فِي جَعْلِهِ تَبَعًا لَهُ نَظَرًا لَهُ ځکه چې د بچې د مسلمان تابع ګرځول د ده د پاره نظر او شفقت دې

تشریح:- دلیل دادې.چه دا ماشوم د مسلمان تابع جوړولو کې په ده باندې شفقت دې.په دنیاکې هم، او په آخرت کې هم.په دنیاکې خودا چې دده سره به دکافرانو پشان سلوك نشي کولې.اود مرګ نه روسته به د مسلمانانو په قبرستان کې دفن کولې شي .او په آخرت کې داچه د جهنم د عذاب ځخه به نجات بیا مومي .

وَلَوْ كَانَ أَحَدُهُمَا كِتَابِيًّا وَالْآخَرُ مَجُوسِيًّا او که په دوی کې یو کتابي وه او بل مجوسي وه فَالْوَلَدُ كِتَابِيٌّ نو بچې کتابي دې لِأَنَّ فِيهِ نَوْعَ نَظَرٍ لَهُ ځکه چې په دې کې هم د بچې د پاره یو ډول له شفقت دې إِذِ الْمَجُوسِيَّةُ شَرٌّ ځکه چې مجوسي کیدل د کتابي نه بد دی

تشریح:-اوکه په زوجینو کې یوکس کتابي او بل کس مجوسي یا بت پرست وي .نو بچې به د کتابي تابع وي .تردې چې دده ذبیحه به حلال وي .اود مسلمان سره به دده نکاح جائز وي .دلیل دادې.چه بچې د کتابي په تابع جوړولو کې هم په بچې باندې یو ډول شفقت دې.ځکه چې مجوسي کیدل،د کتابي کیدلو نه زیات بدتر دی .لکه چې په دنیاکې د کتابي ذبیحه حلاله ده.اود کتابیه سره د مسلمان نکاح درست ده.اوپه آخرت کې به د اهل کتابو عذاب دمجوسو نه کم وي .

وَالشَّافِعِيُّ رحمه الله يُخَالِفُنَا فِيهِ لِلتَّعَارُضِ امام شافعي رحمه الله په دې اړه کې زموږ مخالف دې د تعارض په وجه سره

تشریح:-حضرت امام شافعي رحمه الله بچې د کتابي په تابع جوړولو کې زموږ مخالف دې.که پلار کتابي وي .اومور مجوسیه وي .نود امام شافعي رحمه الله اصح قول دادې.چه بچې به مجوسي وي .امام محمد رحمه الله هم ددې قائل دې.او دوهم قول دادې.چه بچې به د پلار تابع وي .او کتابي به وي .امام مالك رحمه الله هم ددې قائل دې.اوکه مور کتابیه وي .او پلار مجوسي وي .نود امام شافعي رحمه الله صرف یو قول دې.چه بچې به د پلار تابع وي.او مجوسي به وي .نه به دده ذبیحه حلاله وي .او نه به دده سره د مسلمان نکاح درست وي .

[للتعارض] په دې عبارت سره د امام شافعي رحمه الله دلیل بیانوي .د دلیل حاصل دادې.چه په الحاقینو کې تعارض دې. یعني که بچې دمجوسي سره لاحق کوو.نو دده سره به دمسلمان نکاح،او دده ذبیحه به حرام وي .اوکه د کتابي سره ئې الحاق کوو.نو دده ذبیحه به هم حلال وي .او دده سره به د مسلمان نکاح هم جائز وي .

وَنَحْنُ بَيَّنَّا التَّرْجِيحَ او موږ ترجیح بیانه کړه .

تشریح:- علامه مرغیناني رحمه الله فرمائي .چه موږ وجه د ترجیح بیان کړې ده.هغه داچه بچې د کتابي په جوړولو کې په ده باندې شفقت دې.په دې وجه به بچې د کتابي تابع جوړولې شي .

**که ښځه مسلمانه شي او خاوند په کفرباتې شي**

وَإِذَا أَسْلَمَتِ الْمَرْأَةُ وَزَوْجُهَا كَافِرٌ او هر کله چې ښځه مسلمانه شوه او خاوند ئې کافر وه عُرِضَ عَلَيْهِ الْإِسْلَامُ فَإِنْ أَسْلَمَ فَهِيَ امْرَأَتُهُ نو قاضي به ورته اسلام وړاند کړي که هغه اسلام راوړو نو دغه ئې ښځه ده وَإِنْ أَبَى فَرَّقَ الْقَاضِي بَيْنَهُمَا او که انکارئ وکړو نو قاضي به دواړه جلا کړي وَكَانَ ذَلِكَ طَلَاقًا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ رحمهما الله او وي به دا طلاق په نزد د طرفینو رحمهما الله

تشریح:- صورت د مسئلې دادې.چه ښځه مسلمانه شوه.او ددې خاوند کافر دې.که کتابي وي .او که غیرکتابي وي .نو اوس به قاضي په خاوند باندې اسلام پیش کوي .که د قاضي په اسلام پیش کاوه باندې

خاوند مسلمان شو.نو دا ښځه دده ښځه ده.او نکاح به هم هغه شان قائمه وی .او که خاوند د اسلام راوړلو نه انکار اوکړو.نو قاضی به په دواړوکي تفریق کوی .اودا تفریق د طرفینو رحمهما الله په نیز طلاق دی.فسخ نه ده.

**وَإِنْ أَسْلَمَ الزَّوْجُ وَتَحْتَهُ مَجُوسِيَّةٌ** او که اسلام راوړو خاوند او ښځه ئې مجوسی وه **عَرَضَ عَلَيْهَا الْإِسْلَامَ** پیش به کړې شی ورته اسلام **فَإِنْ أَسْلَمَتْ** که مسلمانه شوه **فَهِيَ امْرَأَتُهُ** نو وی به د ده ښځه **وَإِنْ أَبَتْ** او که انکار ئې او کړو **فَرَّقَ الْقَاضِي بَيْنَهُمَا** جدائی به راولی قاضی د دوئ به مینځ کي **وَلَمْ تَكُنِ الْفُرْقَةُ طَلَاقًا**(١) او دا فراقت به طلاق نه وی د دوی په مینځ کي

**تشریح:-** دوهم صورت دادې.چه خاوند مسلمان شو.او دده په نکاح کي مجوسیه ده.نو قاضی به په ښځه باندې اسلام پیش کوی .که دې اسلام راوړلو.نودا دده ښځه ده.نکاح به هم هغه شان پاته وی .او که د اسلام راوړلو نه ئې انکار اوکړلو.نو قاضی به په دواړوکي تفریق کوی .اودا فرقت به طلاق نه وی .بلکه فسخ د نکاح به وی .

**وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ رحمه الله لَا تَكُونُ الْفُرْقَةُ طَلَاقًا فِي الْوَجْهَيْنِ** او امام ابوسف فرمائی چې نه به وی دا جدائی طلاق په دواړو صورتو نوکي

**تشریح:-** امام ابویوسف رحمه الله فرمائی .چه په دواړو صورتونوکي به تفریق طلاق نه وی .(برابره خبره ده.که خاوند د اسلام راوړلو نه انکار اوکړی .او که ښځه انکار اوکړی )بلکه فسخ د نکاح به وی .
(١)ددې تفریق په فسخ منلوکي فائده داده.چه د تفریق نه روسته به هم په شمیر د طلاق کي کمې نه راځی .تردې که د آخر د مسلمانیدلو نه روسته ئې په دوهم خلی نکاح اوکړله.نو خاوند به د درې طلاقو مالك وی .او دچا په نیز چې فرقت طلاق دی.د هغوی په نیز د دوهم خلی نکاح نه روسته به د دوې [دوه] طلاقونو مالك وی .د فرقت په وجه سره به یوکم شی .

**أَمَّا الْعَرْضُ فَمَذْهَبُنَا** هر چې اسلام پیش کول دی نو دا زموږ مذهب دی **وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رحمه الله: لَا يُعْرَضُ الْإِسْلَامُ** امام شافعی رحمه الله فرمائی اسلام به ورته نه شی پیش کولې **لِأَنَّ فِيهِ تَعَرُّضًا لَهُمْ** ځکه چې په دې کي ذمیانوته تعرض کول دی **وَقَدْ ضَمِنَّا بِعَقْدِ الذِّمَّةِ أَنْ لَا نَتَعَرَّضَ لَهُمْ** او موږ په عقد ذمه سره د دې ضامن شوی یو چې تعرض به ورته نه کوو **إِلَّا أَنَّ مِلْكَ النِّكَاحِ قَبْلَ الدُّخُولِ غَيْرُ مُتَأَكِّدٍ** مګر دا چې عقد نکاح قبل الدخول غیر مؤکد وی **فَيَنْقَطِعُ بِنَفْسِ الْإِسْلَامِ** نو دا منقطع کیږی په نفس اسلام راوړو سره **وَبَعْدَهُ مُتَأَكِّدٌ** او روسته د دخول نه موکد دې **فَيَتَأَجَّلُ إِلَى انْقِضَاءِ ثَلَاثِ حِيَضٍ كَمَا فِي الطَّلَاقِ** نو مهلت به ور کولای شی تر تیریدو د درې حیضونو پورې لکه په طلاقوکي.

**حل اللغة:** ① **العرض** پیش کول ② **ینقطع** ختمیږی ③ **انقضاء** پوره کیدل]

**تشریح:-** علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی .چه په آخر باندې اسلام پیش کول زموږ مذهب دې.امام شافعی رحمه الله فرمائی . چې په آخرباندې به اسلام نشی پیش کولې.ددوی دلیل دادې.چه په اسلام پیش کولوکي ذمیانو سره تعرض کول دی .حالانکه د عقد ذمه په ذریعه موږ ددې خبرې ضمانت ورکړې دې.چه موږ به ددوی سره هیڅ تعرض نه کوو.خوچونکه ملك د نکاح د دخول نه وړاندې غیرمؤکد وو.په دې وجه به په اسلام راوړلو سره فوراً نکاح منقطع شی .اود دخول نه روسته ملك د نکاح مؤکد کیږی .په دې وجه به وقوع د فرقت درې حیضه تیریدلو پورې مؤخر کیږی .لکه په طلاق کي .یعنی د دخول نه وړاندې نفس طلاق نکاح منقطع کوی .اود دخول نه روسته نکاح د عدت د انقضاء نه روسته منقطع کیږی .

(١) القول الراجح هو قول الطرفين رحمهما الله كذا في الخانية (٢٦٨\٢) ومجمع الأنهر(٣٧١\١) والدرالمختار(٤٢٣\٢) والهندية (٣٣٨\١) ...من القول الراجح (٢٩٨\١)-



(١)د علامه مرغینانی رحمه الله په عبارت [فیتأجل إلی إنقضاء ثلث حیض]کي ثلث حیض غلط دې.ځکه چې د امام شافعی رحمه الله په نیزپه عدت کي طهر معتبر دې.حیض معتبر نه دې.خود عبارت د تصحیح په طور داسې ونیلې شی .چه امام شافعی رحمه الله فرمائی ..اې حنفیانو! ستاسو په نیز مناسب دی .چه وقوع د فرقت درې حیضه تیریدلو پورې مؤخر کړې شی .په دې صورت کي به عبارت بې غباره(بې خطره) شی .

**وَلَنَا أَنَّ الْمَقَاصِدَ قَدْ فَاتَتْ** زموږ دلیل دا دې چې مقاصد خو فوت شو **فَلَا بُدَّ مِنْ سَبَبٍ تُبْتَنَى عَلَيْهِ الْفُرْقَةُ** نو د داسې سبب کیدل ضروری دی چې قائم شی پرې فرقت

**تشریح:-** زموږ دلیل دادې.چه د ښځې په مسلمانیدلو یا د مجوسیه ښځې د خاوند په مسلمانیدلو سره د نکاح مقاصد فوت شو.او فوت کیدل امر حادث دې.په دې وجه ددې لپاره داسې سبب کیدل ضروری دی .چه په هغې باندې ددې بنا (بنیاد) قائم شی .

**وَالْإِسْلَامُ طَاعَةٌ لَا يَصْلُحُ سَبَبًا لَهَا** او اسلام راوړل طاعت دې کوم چې د فرقت سبب کیدای نه شی **فَيُعْرَضُ الْإِسْلَامُ لِتَحْصُلَ الْمَقَاصِدُ بِالْإِسْلَامِ** نو اسلام به پیش کولای شی چې د اسلام راوړو مقاصد حاصل شی **أَوْ تَثْبُتَ الْفُرْقَةُ بِالْإِبَاءِ** یا د انکار په وجه فرقت ثابت شی

**حل اللغة:** ① **طاعة:** تابعداری ② **الفرقة:** جدائی ③ **الاباء:** انکار]

**تشریح:-** اوس دوې [دوه] صورتونه دی .که د نکاح د مقاصدو فوت کیدلوسبب اسلام اوګرځولې شی .اوکه ددې سړی کفر چې تراوسه پورې په کفرباندې پاته دې.ړومبې صورت خو ممکن نه دې.ځکه چې اسلام اطاعت اوفرمانبرداری ده.د نکاح د مقاصد پشان نعمتونو د فوت کیدلوسبب نشی کیدلې.او دوهم صورت هم ممکن نه دې.ځکه چې د [من بقی علی کفره]کفر د ړومبې نه موجود دې.اودې کفرخو نه په ابتداء کي نکاح منع کړله.او نه ئې د نکاح د مقاصدو(نعمتونو) بقاء فوت کړله.نو ددې دواړو نه علاوه د دریم شی کیدل ضروری دی .چه سبب اوګرځولې شی .په دې وجه به قاضی په ،من بقی علی کفره، باندې اسلام پیش کوی .نو که دې مسلمان شو.نو،الحمد لله، د نکاح مقاصد به حاصل شی .د فرقت ارتیا به نه وی .او که د اسلام راوړلو نه ئې انکار اوکړلو.نوفرقت به ثابت شی .نود اسلام نه انکار به د نکاح د مقاصدو فوت کیدلو سبب وی .ځکه چې اباء(انکار)،عن الاسلام، د نعمتونو د سلب کاوه صلاحیت لری .اوچونکه د نکاح د مقاصدو فوت کیدلو لپاره فرقت لازمی دې.نوکوم چې د فوت کیدلو سبب وی .هم هغه به ددې د لازم یعنی د فرقت سبب وی .په دې وجه احناف رحمهم الله وائی . چې په ،من بقی علی کفره، باندې به اسلام پیش کولې شی .چه دده ،اباء عن الاسلام، د تفریق سبب جوړ شی .
پاتې شو داامام شافعی رحمه الله دا ونیل.چه ذمیانوسره تعرض ممتنع دې.نوموږ وایو.چه جبری تعرض ممتنع دې.خو دوی سره په اختیاری طور خبرې اترې ممتنع نه دی .زموږ د مذهب تائید په دې حدیث سره هم کیږی .چه په مؤطاکي د ابن شهاب الزهری رضي الله عنه نه روایت دې.[أن إبنة الولید بن المغیرة کانت تحت صفوان إبن أمیة فأسلمت یوم الفتح وهو بزوجها صفوان إبن أمیة من الإسلام فلم یفرق رسول الله ﷺ بینه و بین إمرأته حتی أسلم صفوان واستقرت عنده إمرأته بذالك النكاح] د ولید بن مغیره لور د صفوان ابن امیه په نکاح کي وه.د فتح په ورځ هغه مسلمانه شوه.او ددې خاوند صفوان ابن امیه د اسلام نه اوتختیدلو.نو نبی کریم ﷺ دده او دده د ښځې په مینځ کي تفریق اونکړو.تردې چې صفوان مسلمان شو.او دده سره دده ښځه هم په هغه نکاح کي پاتې شوه.اوطحاوی اوابن المغیره رحمه الله ذکر کړی دی .[أن عمر رضي الله عنه فرق بین نصرانی و بین نصرانیة بإبائه عن الإسلام] یعنی حضرت عمر رضي الله عنه د نصرانی اونصرانیه په مینځ کي تفریق کړې وو.د نصرانی د اسلام نه د انکار په وجه.[وذکر أصحابنا أن رجلا من تغلب أسلمت إمرأته وهی نصرانیة فرفعت إلی عمربن الخطاب رضي الله عنه فقال له أسلم والا فرقت بینکما،فأبی ففرق بینهما] یعنی زموږ اصحابو ذکر کړی دی .چه د تغلب د یوسړی ښځه مسلمانه

شوه.حالانکه دا نصرانیه وه.دې دحضرت عمرؓ په عدالت کې معامله پیش کړله.حضرت عمرؓ اوفرمائیل.ته اسلام راوړه.ګنی په تاسو دواړوکې به تفریق کیږی .هغې د اسلام راوړلو نه )انکار اوکړلو.نودوی ؓ ددې دواړو په مینځ کې تفریق اوکړلو.ددې احادیثونه اسلام پیش کول ثابت دی .(الکفایه فتح القدیر)

**وَجْهُ قَوْلِ أَبِي يُوسُفَ رحمه الله أَنَّ الْفُرْقَةَ بِسَبَبٍ يَشْتَرِكُ فِيهِ الزَّوْجَانِ** دَ امام ابویوسف رحمه الله دَ قول وجه دا ده چې فرقت په داسې سبب سره شوې دې چې زوجین پکې شریك دی **فَلَا يَكُونُ طَلَاقًا كَالْفُرْقَةِ بِسَبَبِ الْمِلْكِ** نو دابه طلاق نه وی لکه هغه فرقت کوم چې د ملك په سبب سره وی

**تشریح:**-د امام شافعی رحمه الله سره د بحث مباحثه نه د فارغ کیدلو نه روسته اوس دامام ابویوسف رحمه الله سره خبرې کول غواړي .ځکه چې دوی فرمائیلی وو.چه تفریق په دواړه صورتونوکې طلاق نه دې.بلکه فسخ ده.د امام ابویوسف رحمه الله د قول وجه داده.چه فرقت په داسې سبب سره واقع شو.چه په هغې کې زوجین دواړه شریك دی .یعنی په دې دواړوکې د هریو دا اړخه متحقق دې.مطلب داچه یومسلمان شو.اوبل د اسلام راوړلو نه انکار اوکړلو.نو هله فرقت واقع شو.اوهر هغه فرقت چې په داسې سبب سره وو.چه په هغې کې زوجین دواړه شریك وی .طلاق نه وی .مثلاً ،احد الزوجین، د بل مالك شو.نو په دې وجه چې کوم فرقت وی .هغه به طلاق نه وی .بلکه فسخ د نکاح به وی .

**وَلَهُمَا أَنَّ بِالْإِبَاءِ امْتَنَعَ الزَّوْجُ عَنِ الْإِمْسَاكِ بِالْمَعْرُوفِ مَعَ قُدْرَتِهِ عَلَيْهِ بِالْإِسْلَامِ** دَ طرفینو دلیل دا دې چې خاوند داباء په وجه سره دَ امساك بالمعروف نه منع شو سره دَ قدرت دَ ده نه په قبول دَ اسلام سره **فَيَنُوبُ الْقَاضِي مَنَابَهُ فِي التَّسْرِيحِ كَمَا فِي الْجَبِّ وَالْعُنَّةِ** نو قاضی به په تسریح بالاحسان کې دَ ده قائمقام وی لکه په مقطوع الذکراوعنین کې

**حل اللغة:** ① **الامساک:** بندول ② **التسریح:** خوشې کول، پریښول ③ **الجب:** مقطوع الذکر ④ **العنة:** نامردی ،په جماع باندې قدرت نه لرل]

**تشریح:**- د طرفینو رحمهما الله دلیل اوپه دواړو صورتونوکې وجه د توپیر داده.چه د ،اباء عن الاسلام، په وجه خاوند د امساك بالمعروف نه منع شو.حالانکه په اسلام قبلولوسره دې په امساك بالمعروف باندې قادر وو.اود شریعت اصول دی .که خاوند د امساك بالمعروف نه منع شی .نو قاضی په ،تسریح بالاحسان، کې د خاوند قائم مقام وی .او تسریح نوم دې.د طلاق.نود قاضی دا تفریق به طلاق وی .لکه څنګه چې د ،مقطوع الذکر،اود ،عنین، په صورت کې د ښځې په مطالبه باندې قاضی تفریق کوی .اودا تفریق طلاق وی .دغه دول دلته کې د سړی د اړخه تفریق طلاق دې.

**أَمَّا الْمَرْأَةُ فَلَيْسَتْ بِأَهْلٍ لِلطَّلَاقِ** هر چې ده ښځه نو دَغه دَ طلاقو اهل نه ده **فَلَا يَنُوبُ الْقَاضِي مَنَابَهَا عِنْدَ إِبَائِهَا** نو په وخت دَ اباء به قاضی دَ دې قائمقام نه وی

**تشریح:**- ښځه خود طلاق اهلیت نه لری . نوددې د ،انکارعن الاسلام، په وخت قاضی په ،تسریح بالاحسان، کې ددې قائم مقام نشی کیدلې. ځکه چې تسریح(طلاق) دښځې د اړخه مقصود نه دی.بیا

**ثُمَّ إِذَا فَرَّقَ بَيْنَهُمَا بِإِبَائِهَا** بیا چې هر کله قاضی په دواړوکې تفریق او کړو دَ ښځې په انکار سره **فَلَهَا الْمَهْرُ** **إِنْ كَانَ دَخَلَ بِهَا لِتَأَكُّدِهِ بِالدُّخُولِ** نو ښځې لره به مهر وی که چرې دخول ئې ورسره کړې وه دَمهر دَ موَکد کیدو په وجه سره **وَإِنْ لَمْ يَكُنْ دَخَلَ بِهَا** او که دخول ئې ورسره نه وه کړې **فَلَا مَهْرَ لَهَا لِأَنَّ الْفُرْقَةَ مِنْ قِبَلِهَا** نو مهر ورته نشته په وجه دَ فرقت راتلو دَ دې دَ اړخ نه **وَالْمَهْرُ لَمْ يَتَأَكَّدْ فَأَشْبَهَ الرِّدَّةَ وَالْمُطَاوَعَةَ**.او مهر نه دې موَکد شوې نو دا دَردت او مطاوعت مشا به شوه .



**تشریح:**- د ښځې د اسلام راوړلو نه د انکار کاوه په وجه چې هرکله قاضی تفریق اوکړو.نو اوس به کتلې شی چه ددې خاوند ددې ښځې سره دخول کړې وو.او که نه.که دخول ئې کړې وو.نود ښځې لپاره به پوره مهرواجب وی .ځکه چې د دخول په وجه مهرموَکد شو.او که دخول ئې نه وی کړې.نود ښځې لپاره به مهر نه وی .ځکه چې فرقت د ښځې د اړخه واقع شو.اودعدم دخول په وجه مهرموَکد شوې هم نه دې.نودا د ردت او،مطاوعت ابن زوج، مشابه شو.یعنی ښځه مرتده شوه.،العیاذ بالله، یائې د خپل خاوند ځوی ته پخپل خان باندې قدرت ورکړلو.نوکه دا ،بعد الدخول، وی .نود ښځې لپاره به کامل مهروی .ځکه چې د دخول په وجه مهرموَکد شوې دې.او که قبل الدخول وی .نوددې لپاره به مهرنه وی .والله اعلم

## که په دارحرب کې ښځه مسلمانه شی.او خاوند کافر وی

**وَإِذَا أَسْلَمَتِ الْمَرْأَةُ فِي دَارِ الْحَرْبِ** او هر کله چې اسلام راوړو ښځې په دار الحرب کې **وَزَوْجُهَا كَافِرٌ** او دَ دې خاوند کافر وو **أَوْ أَسْلَمَ الْحَرْبِيُّ وَتَحْتَهُ مَجُوسِيَّةٌ** او یا اسلام راوړو حربی او دَ ده لاند مجوسیه وه **لَمْ تَقَعِ الْفُرْقَةُ عَلَيْهَا حَتَّى تَحِيضَ ثَلَاثَ حِيَضٍ** نو فرقت نه واقع کیږی په دې باند تر دې چې درې حیضونه ئې راشی **ثُمَّ تَبِينَ مِنْ زَوْجِهَا** بیا به د خپل خاوند نه بائنه شی

**تشریح:**-صورت د مسئلې دادې.چه په دارحرب کې یوه ښځه مسلمانه شوه.اوددې خاوند کافر دې.یا حربی سړې مسلمان شو.اودده په نکاح کې مجوسیه ښځه ده.نو په دواړه صورتونوکې به دزوجینو په مینځ کې تفریق نشی کولې.تردې پورې چې دا ښځه درې حیضه تیر کړی .او که د ذوات الحیض څنې نه وی .نوچه درې میاشتې تیرې کړی .بیا د درې حیضه یا درې میاشتې تیریدلو نه روسته به فرقت واقع شی .اودا ښځه به دخپل خاوند نه بائنه شی .داخبره په ذهن کې ساتئ:چه دفرقت واقع کیدلو نه روسته دې بیاد عدت لپاره نور درې حیضه یا درې میاشتې تیرې کړی .(عینی شرح هدایه)

**وَهَذَا لِأَنَّ الْإِسْلَامَ لَيْسَ سَبَبًا لِلْفُرْقَةِ** او دا ځکه چې اسلام دَ فرقت سبب نه دې **وَالْعَرْضُ عَلَى الْإِسْلَامِ مُتَعَذِّرٌ لِقُصُورِ الْوِلَايَةِ** او پیش کول ئې اسلام ته متعذ ر دی، دقصور دَ ولایت په وجه سره **وَلَا بُدَّ مِنَ الْفُرْقَةِ دَفْعًا لِلْفَسَادِ** او فرقت ضروری دې دَ فساد لرې کاوه لپاره ،، **فَأَقَمْنَا شَرْطَهَا وَهُوَ مُضِيُّ الْحَيْضِ مَقَامَ السَّبَبِ كَمَا فِي حَفْرِ الْبِئْرِ** نو موږ شرط دَ فرقت یعنی مضی دَ حیض لره دَ سبب قائمقام کړو لکه په کنستلو دَ کوهی کې

**تشریح:**-د دلیل نه وړاندې په دې پوهه شئ:چه په عبارت[العرض علی الاسلام متعذر]کې قلب دې.په اصل کې داسې دې.[عرض الاسلام علی الکافرمتعذر] ځکه چې په اسلام باندې کافرنشی پیش کولې.بلکه په کافر باندې اسلام پیش کولې شی .اولکه څنګه چې وئیلې شی .[عرضت الناقة علی الحوض]او [ادخلت الخاتم فی الاصبع] په اصل کې داسې ده.[عرضت الحوض علی الناقة]او [ادخلت الاصبع فی الخاتم]

اوس د دلیل حاصل دادې.چه اسلام راوړل د فرقت سبب نشی کیدلې.لکه څنګه چې په مخکې مسئله کې معلومه شوه.اوچونکه په دارحرب کې مسلمانانو ته ولایت هم حاصل نه دې.په دې وجه په دارحرب کې کافر باندې اسلام پیش کول هم محال دی .اود فساد لرې کاوه لپاره فرقت کیدل هم ضروری دی .(فساد دادې.چه مسلمانه دکافر په نکاح کې وی )نوهرکله چې د فرقت سبب،یعنی اباء عن الاسلام مقدر منل متعذر شو.نوموږ د فرقت شرط(یعنی درې حیضه تیریدل، که د ذوات الحیض څنې وی .یا درې میاشتې تیریدل،که د ذوات الحیض څنې نه وی )د فرقت د سبب قائم مقام جوړ کړلو.لکه دکوهی په کنستلوکې صورت دادې.چه یوسړی په عامه لاره کې ،یاد غیر په ملك کې څاه اوکنستلو.بیا په دې کې سړی یا حیوان (څاروی) پریوتلو.او مړشو.نو کنستونکې ضامن دې.ځکه چې په کوهی کې د غورزیدلو علت،د غورزیدونکی دروندوالې اوبوجه دې.خو دروندوالې سبب نه جوړیږی .ځکه چې دا امرطبعی دې.په دې کې هیڅ تعدی نشته.اود غورزیدلو سبب مشی (تلل) دی .خو مشی سبب جوړول هم محال دی .ځکه چې په لاره

کې تلل مباح دی .نود غوړزيدلو شرط (څاه کنستل) به دسبب قائم مقام جوړولې شی. څاه کنستونکې به ضامن ګرځولې شی .دغه ډول دلته کې هم د فرقت شرط د فرقت دسبب قائم مقام دی. اوصاحب شرط، يعنی

وَلَافَرْقَ بَيْنَ الْمَدْخُولِ بِهَا وَغَيْرِ الْمَدْخُولِ بِهَا او دَ مدخولې او غیر مدخولې څه توپیر نشته وَالشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ يُفَصِّلُ كَمَا مَرَّ لَهُ فِي دَارِ الْإِسْلَامِ او امام شافعی رحمه الله دغسې تفصیل کوی کوم چې دَ دهٔ دَ اړخ نه په دار اسلام کې تیر شو

تشریح:- زموږ په نیز په مدخول بها اوپه غیر مدخول بها کې هيڅ توپير نشته.د دواړو د فرقت لپاره درې حيضه تيرول شرط دی .البته امام شافعی رحمه الله هم هغه شان تفصيل کوی .لکه څنګه چې ددوی قول په داراسلام (مسئله)کې تيرشو.يعنی په دارحرب کې که د ،احدالزوجين، اسلام د دخول نه وړاندې وی .نو فرقت به فی الحال واقع شي .او که د دخول نه روسته دې.نود درې حيضه تيريدلونه روسته به فرقت واقع شی .خوموږ امام شافعی رحمه الله ته لاس په نامه عرض کوو.چه حضرت دا درې حيضه د عدت لپاره نه دی .بلکه د فرقت لپاره دی .لهذا په دې کې مدخول بها اوغير مدخول بها دواړه برابر دی .والله اعلم (عینی شرح هدایه)

**د تفريق نه روسته په حربيه ښځه باندې عدت نشته**

وَإِذَا وَقَعَتِ الْفُرْقَةُ وَالْمَرْأَةُ حَرْبِيَّةٌ کله چې فرقت واقع شو او ښځه حربيه وه فَلَا عِدَّةَ عَلَيْهَا نو په دې عدت نشته وَإِنْ كَانَتْ هِيَ الْمُسْلِمَةَ او که دغه (حربيه ) مسلمانه شوه فَكَذَلِكَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله بيا هم دَغسې ده په نزد دَ امام ابوحنيفه رحمه الله خِلَافًا لَهُمَا وَسَيَأْتِيكَ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى خلاف دې صاحبينو رحمهما الله لره او عنقريب به راشی انشاء الله تعالی

تشریح:- صورت دمسئلې دادې.چه هرکله د درې حيضه تيريدلونه روسته فرقت واقع شی .او ښځه حربيه وی . اسلام راوړی .صرف ددې خاوند مسلمان شوې دې.نو بالاجماع په حربيه ښځه باندې عدت واجب نه دې. ځکه چې شرعی حکم ددې په حق کې ثابت نه دې.او که حربيه مسلمانه شوه.او ددې خاوند حربی کافر پاتې شو.نود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز په دې باندې هم عدت واجب نه دې.اود صاحبينو رحمهما الله په نيز به په دې باندې عدت واجب وی .شمس الائمه هم داسې ذکر کړی دی .اودا اختلاف به عنقريب ،انشاء الله، راشی .

وَإِذَا أَسْلَمَ زَوْجُ الْكِتَابِيَّةِ هر کله چې دَ کتابيه خاوند اسلام راوړو فَهُمَا عَلَى نِكَاحِهِمَا نو دغه دواړه به پخپل نکاح وی لِأَنَّهُ يَصِحُّ النِّكَاحُ بَيْنَهُمَا ابْتِدَاءً فَلَأَنْ يَبْقَى أَوْلَى ځکه چې په دوی کې ابتداءً نکاح دې نو پاته پاتې کيدل به ئې په درجه اولی وی

تشریح:- او که د کتابيه خاوند مسلمان شو.نودا دواړه به په خپله زړه نکاح باندې پاته پاتې وی .ځکه چې د مسلمان سړی اودکتابيه ښځې په مينځ کې ابتداءً نکاح صحيح ده.نو بقاء به په درجه اولی صحيح وی .ځکه چې بقاء د ابتداء نه آسانه ده.

**په زوجينوکې د يوکس يا د دواړو د ګرفتارئ په صورت کې دجدائی حکم**

قَالَ وَإِذَا خَرَجَ أَحَدُ الزَّوْجَيْنِ إِلَيْنَا مِنْ دَارِ الْحَرْبِ مُسْلِمًا هر کله چې يو دَ زوجينو دَ دارالحرب زمونږ اړخ ته رااوځی مسلمان شوې وَقَعَتِ الْبَيْنُونَةُ بَيْنَهُمَا نو په دوی کې بينونت واقع شو وَقَالَ الشَّافِعِيُّ لَا تَقَعُ او امام شافعی رحمه الله فرمائی نه واقع کيږی وَلَوْ سُبِيَ أَحَدُ الزَّوْجَيْنِ اوکه ګرفتار کړې شو يو دَ زوجينو نه وَقَعَتِ الْبَيْنُونَةُ بَيْنَهُمَا بِغَيْرِ طَلَاقٍ نو په دوی کې به بينونت واقع شی پغير دَ طلاقو نه وَإِنْ سُبِيَا مَعًا او که دواړه يو ځاې ګرفتار کړې شو لَمْ تَقَعْ نو بينونت به واقع نه وی وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رحمه الله: وَقَعَتْ او امام شافعی رحمه الله فرمائی چې واقع به شی فَالْحَاصِلُ أَنَّ السَّبَبَ هُوَ التَّبَايُنُ دُونَ السَّبْيِ عِنْدَنَا نو حاصل دا چې زموږ په نزد سبب دَ بينونت تبائن د داردې نه چې



ګرفتاری وَهُوَ يَقُولُ بِعَكْسِهِ .او شافعی رحمه الله دَ دې په عکس وائی

حل اللغة: ① سبی: قيد شی ② البينونة: جدائی ③ التبائن: اختلاف ]

تشریح:- په دې عبارت کې درې صورتونه دی .يومتفق عليه دې.اودوې [دوه] مختلف فيه دی. متفق عليه خو دادې. دوهم صورت . چې ،احد الزوجين، ګرفتار کړې شو.نو په دې صورت کې به بالاتفاق بينونت واقع شي .د مختلف فيه ړومبې صورت دادې.که ،احد الزوجين،مسلمان شو.اود دارحرب نه داراسلام ته راغلو.نود احنافو رحمهم الله په نيز به په دې دواړوکې بينونت واقع شی .اود امام شافعی رحمه الله په نيز به نه واقع کيږی .دريم صورت دادې.چه زوجين دواړه ګرفتار کړې شو.نو په دې صورت کې د احنافو رحمهم الله په نيز بينونت نه واقع کيږی .اود امام شافعی رحمه الله په نيز واقع کيږی .

حاصل دکلام دادې.چه د بينونت سبب زموږ په نيز د زوجينو په مينځ کې حقيقتاً اوحکماً تباين دارين دې.ګرفتاری نه ده.د امام شافعی رحمه الله په نيز د بينونت سبب ګرفتاری ده.تباين دارين نه دې.امام مالك او امام محمد رحمهما الله هم ددې قائل دی .

لَهُ أَنَّ لِلتَّبَايُنِ أَثَرُهُ فِي انْقِطَاعِ الْوِلَايَةِ دَ امام شافعی رحمه الله دليل دا دی چې دَ تباين اثر په انقطاع دَ ولايت کې دې وَذَلِكَ لَا يُؤَثِّرُ فِي الْفُرْقَةِ او دا په فرقت کې اثر نه کوی كَالْحَرْبِيِّ الْمُسْتَأْمَنِ وَالْمُسْلِمِ الْمُسْتَأْمَنِ لکه حربی مستامن او مسلمان مستامن چې دی أَمَّا السَّبْيُ پاتې شو ګرفتار کيدل فَيَقْتَضِي الصَّفَاءَ لِلسَّابِي نو دغه غواړی دَ ګرفتار کوونکی دَ پاره خالص کيدو لره وَلَا يَتَحَقَّقُ إِلَّا بِانْقِطَاعِ النِّكَاحِ او دانه متحقق کيږی مګر په انقطاع دَ نکاح سره وَلِهَذَا يَسْقُطُ الدَّيْنُ عَنْ ذِمَّةِ الْمَسْبِيِّ په دې وجه دَ ګرفتار شوې دَ ذمې نه پور ساقطيږی

حل اللغة: ① المستامن: هغه کافرچه په دارالاسلام کې نې امن اخستې وی ② الانقطاع: ختميدونکې]

تشریح:- د امام شافعی رحمه الله دليل دادې.چه د تباين دارين اثر دادې.چه د تباين دارين په وجه ولايت منقطع کيږی .

او انقطاع د ولايت په فرقت باندې نه اثرانداز کيږی .لکه مثلاً يوحربی امان حاصل کړی .او په داراسلام کې داخل شی .نود تباين دارين په وجه ددې حربی مستامن ولايت خومنقطع شو.خو دده او دده د ښځې په مينځ کې فرقت واقع نشو.دغه ډول يومسلمان امان حاصل کړو.اودارحرب ته لاړلو.دده ولايت منقطع شو.خو دده او دده د ښځې په مينځ کې فرقت واقع نشو.نوثابته شوه.چه تباين دارين ته خو په انقطاع د ولايت کې دخل شته.خو په فرقت کې هيڅ دخل نشته.

[؟] پاتې شوقيد کيدل.نودا تقاضاکوی .چه د قيد کونکی لپاره خالص شی .اودا خالص کيدل به هغه وخت ممکن وی .چه کله نکاح منقطع شی .نو معلومه شوه.چه قيد کيدل د ولايت د انقطاع اود فرقت دواړو سبب دې.که دا دواړه يوځائې قيد وی .او که يوقيد وی .اوچونکه ګرفتار شوې خالص ګرفتارونکې وی .په دې وجه د ګرفتار شوی د ذمه نه د کافرانو قرضه ساقطيږی .

وَلَنَا أَنَّ مَعَ التَّبَايُنِ حَقِيقَةً وَحُكْمًا لَا تَنْتَظِمُ الْمَصَالِحُ. زموږ دليل دا دې چې سره دَ تباين دَ دارينو حقيقةً او حکماً مصالح دَ نکاح نه شی استوار کيداې فَشَابَهَ الْمَحْرَمِيَّةَ وَالسَّبْيُ يُوجِبُ مِلْكَ الرَّقَبَةِ نو دا مشابه شوه دَ محرميت او ګرفتاری صرف موجب دَ ملك دَ رقبه ده وَهُوَ لَا يُنَافِي النِّكَاحَ ابْتِدَاءً کومه چې منافی دَ نکاح نه ده ابتداءً فَكَذَلِكَ بَقَاءً نو دغه ډول به بقاءً هم نه وی فَصَارَ كَالشِّرَاءِ نو ګرفتار يدل دَ اغستو پشان شو ثُمَّ هُوَ يَقْتَضِي الصَّفَاءَ فِي مَحَلِّ عَمَلِهِ نو ګرفتاری دَ خپل عمل په محل کې خالص کيدل غواړی وَهُوَ الْمَالُ لَا فِي مَحَلِّ النِّكَاحِ او دغه مال دې نه چې په محل دَ نکاح کې

حل اللغة: ① التبائن: اختلاف ② تنتظم: شامليږی ]

تشریح:- زموږ دليل دادې.چه تباين د دارينو حقيقتاً اوحکماً د مصلحتونو د انتظام منافی دې.اوکوم شی چې

د مصلحتونو د انتظام منافی وی .هغه نكاح قطع كوی .لكه محرميت شو.نو تباين د دارينو به نكاح قطع كوی .حقيقتاً تباين د دارينو دادې.چه په دې دواړوكي شخصی تباعد اوموندې شی .يعنی يو په دارحرب كې وی .او بل په داراسلام كې وی .اود تباين حكمی نه مراد دادې.چه كوم كور ته يوكس داخل شی . ده ته بيا د واپس كيدلو اراده نه وی .بلكه د اوسيدلو او ايساريدلو اراده نې وی .تردې پورې د مذهب دې.او په[والسبي يوجب ملك الرقبة] سره د امام شافعی رحمه الله د دليل رد دې.حاصل د رد دا دې. چې گرفتاری موجب د ملك رقبه دې.اوملك رقبه په ابتداء كې دنكاح .منافی نه ده.مثلاً يوكس ،منكوحة الغير، واخستله.نود مشتری لپاره ملك رقبه ثابت شو.خو ددې باوجود د غيرنكاح پاته ده.نو گرفتاری د اخستلوپشان ده.يعنی لكه څنگه چې په شراء سره نكاح نه فاسديږی .دغه ډول په گرفتارئ سره هم دعدم منافات په وجه نكاح نه فاسديږی .

بيا د امام شافعی رحمه الله ونيل.چه گرفتاری كه تقاضا كوی .چه گرفتارشوې خالص شی .د گرفتارونكی دپاره.نودا خبره موږ منو.خو گرفتاری خو په هغه محل كې دخالص كيدلو تقاضا كوی .كوم خائې چې ددې عمل وی .يعنی په مال كې .نه په محل د نكاح كې .نود گرفتارونكی لپاره به د گرفتارشوی په ذات كې علی الخصوص ملك ثابت وی .په محل د نكاح كې به نه وی .يعنی په منافع د بضع كې .څكه چې دا دده د عمل محل نه دې.څكه چې نكاح د سړی د خصوصياتو څنې ده.د ماليت څنې نه ده.نو ددې نه معلومه شوه.چه گرفتاری د فرقت سبب نه دې.

وَفِي الْمُسْتَأْمَنِ لَمْ تَتَبَايَنِ الدَّارُ حُكْمًا لِقَصْدِهِ الرُّجُوعَ او په مستامن كې حكماً تباين دَ دار نه دې شوې دَ ده دَ واپسی د ارادې په وجه سره .

تشريح:-[وفي المستامن ] سره د امام شافعی رحمه الله د قياس ځواب دې.حاصل دځواب دادې.چه زموږ په نيز مطلقاً تباين دارين د بينونت سبب نه دې.بلكه هغه تباين سبب دې.كوم چې حقيقةً اوحكماً دواړه شان وی .او په حرمستامن اومسلم مستامن كې اگرچه حقيقة تباين دې.خوحكماً تباين نه دې.څكه چې دحربی مستامن د داراسلام نه اود مسلمان مستامن د دارحرب نه د واپس كيدلو اراده وی .نو په دې دواړو باندې قياس درست نه دې.والله اعلم بالصواب

## د مهاجرې ښځې داراسلام ته په راتلو ونكاح كول

وَإِذَا خَرَجَتِ الْمَرْأَةُ إِلَيْنَا مُهَاجِرَةً هر كله چې راأووتله ښځه زموږ اړخ ته هجرت كوونكې جَازَ لَهَا أَنْ تَتَزَوَّجَ جائزدی چې هغه نكاح او كړی وَلَا عِدَّةَ عَلَيْهَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله (١) او په دې عدت نشته په نزد دَ امام ابوحنيفه رحمه الله نو

تشريح:-صورت د مسئلې دادې.چه يوه ښځه د دارحرب نه داراسلام اړخ ته هجرت اوكړو.او راغله.برابره خبره ده.چه دا ښځه مسلمانه وی .اوكه ذميه وی .اود واپس كيدلو اراده هم نه لری .نودې مهاجرې ښځې سره د امام صاحب رحمه الله په نيزنكاح جائز ده.او په دې باندې عدت واجب نه دې.

وَقَالَا: عَلَيْهَا الْعِدَّةُ او صاحبين رحمهما الله فرمائی چې په دې عدت شته دې لِأَنَّ الْفُرْقَةَ وَقَعَتْ بَعْدَ الدُّخُولِ فِي دَارِ الْإِسْلَامِ څكه چې فرقت واقع شوې دې نو دَ دخول نه دار الاسلام ته فَيَلْزَمُهَا حُكْمُ الْإِسْلَامِ نو په دې به دَ اسلام حكم لاگو وی

تشريح:- اود صاحبينو رحمهما الله په نيز په دې باندې عدت واجب دې. دليل دادې.چه په داراسلام كې داخليدلونه

(١) القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في الخانية (١٦٩\١) وردالمحتار(٤٢٥\٢) والهندية (٣٣٨\١) وملتقى الأبهر(٣٧٢\١) نقلاً عن القول الراجح (٣٠٠\١)-



روسته فرقت واقع شوې دې.اوهر هغه فرقت چې په داراسلام كې واقع شی .په هغې باندې د اسلام احكام لازميږی .اوعدت هم د اسلام د احكاموڅنې دې.نو په دې مهاجرې ښځې باندې به عدت واجب وی .څوكه حربی په دارحرب كې خپلې ښځې ته طلاق وركړو.بيا دې ښځې داراسلام اړخ ته هجرت اوكړو.نو بالاتفاق به په دې باندې عدت واجب نه وی .

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله أَنَّهَا أَثَرُ النِّكَاحِ الْمُتَقَدِّمِ وَجَبَتْ إِظْهَارًا لِخَطَرِهِ دَ امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې چې عدت دَ تيری نكاح اثر دې كوم چې واجب شوې دې دَ هغه دَ شرف ظاهر ولو دَ پاره وَلَا خَطَرَ لِمِلْكِ الْحَرْبِيِّ او د حربی دَ ملك د نكاح هيڅ شرف نشته وَلِهَذَا لَا تَجِبُ عَلَى الْمَسْبِيَّةِ په دې وجه عدت واجب نه دې په گرفتاره شوې ښځه باند

تشريح:-د امام صاحب رحمه الله دليل دادې.چه عدت د تيرې نكاح اثر دې.چه دا د ملك نكاح د احترام ښكاره كاوه لپاره واجبيږی .اوحال دادې.چه د حربی سړی د نكاح د ملك هيڅ احترام نه وی .نو په دې باندې به هم عدت واجب نه وی .اوچونكه د حربی د ملك نكاح هيڅ احترام نه وی .په دې وجه به بالاتفاق په دې ښځه باندې عدت واجب نه وی .كومه چې گرفتاره شوې ده.

وَإِنْ كَانَتْ حَامِلًا او كه دغه ښځه حامله وی لَمْ تَتَزَوَّجْ حَتَّى تَضَعَ حَمْلَهَا (١) نو نكاح به نه كوی تر دې چې حمل ئې پيداشي وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله أَنَّهُ يَصِحُّ النِّكَاحُ وَلَا يَقْرَبُهَا زَوْجُهَا حَتَّى تَضَعَ حَمْلَهَا كَمَا فِي الْحُبْلَى مِنَ الزِّنَا. دَ امام ابوحنيفه رحمه الله نه دا هم راويت دې چې نكاح خوصحيح دې البته خاوند به دې لره نه ورځی تر دې چې حمل ئې پيداشي لكه چې په حاملې د زنا كې ده

تشريح:- كه دامهاجره ښځه كه حامله وی .نود وضع حمل څخه به وړاندې نكاح نه كوی .دا قول امام محمد رحمه الله ، : امام ابوحنيفه رحمه الله نه روايت كړې دې.او دوهم قول چې دا امام ابويوسف رحمه الله اوحسن بن زياد د امام صاحب رحمه الله نه روايت كړې دې.هغه دادې.چه دې مهاجرې حاملې سره نكاح درست ده.خود وضع حمل څخه به وړاندې وطی نه كوی ..

وَجْهُ الْأَوَّلِ أَنَّهُ ثَابِتُ النَّسَبِ دَ اول وجه دا ده چې حمل ثابت النسب دې فَإِذَا ظَهَرَ الْفِرَاشُ فِي حَقِّ النَّسَبِ نو هر كله چې فراش ئې كيدل ظاهر شو په حق دَ نسب كې يَظْهَرُ فِي حَقِّ الْمَنْعِ مِنَ النِّكَاحِ احْتِيَاطًا نو دَ منع دَ نكاح په حق كې به هم ظاهره وی احتياطاً .

تشريح:- د رو مبی قول وجه داده.چه حمل دغير نه ثابت النسب دې.نود كوم نسب په حق كې چې فراش ښكاره شو.نود نكاح نه د منع په حق كې به هم احتياطاً فراش كيدل ښكاره شی .يعنی دا مهاجره حامله د خپل كافر خاوند صحيح فراش دې.نو ددې سره وطی نشی كولې.اوچونكه احتياطاً د نكاح نه د منع په حق كې هم فراش كيدل ښكاره شو.نو ددې سره نكاح هم نشی كولې.

صاحب د عنايه رحمه الله د قول ثانی دليل دا بيان كړې دې.چه دحربی سړی هيڅ احترام نشته.نو دده دجزء يعنی د حمل احترام به په درجه اولی نه كيږی .په دې وجه دمهاجرې حاملې سرة نكاح درست گرځولې شوې ده.لكه څنگه چې ،په حامله من الزناء كې (درست گرځولې شوې ده)څكه چې د زانی د اوبوهيڅ احترام نشته.اود وطی اجازت څكه ورنكړې شو.څكه چې په خپلو اوبوسره د غير كښت اوبه كول لازميږی .(اول قول اصح دې)

## د ارتداد په صورت كې د زوجين په مينځ كې جدائی

قَالَ وَإِذَا ارْتَدَّ أَحَدُ الزَّوْجَيْنِ عَنِ الْإِسْلَامِ او هر كله چې احد الزوجين مرتد شو (يعنی دَ اسلام نه اوگرځيدو وَقَعَتْ

(١) القول الراجح هو ظاهر الرواية كذا في فتح القدير(٢٩٦\٣) والعناية (٢٩٦\٣) وردالمحتار(٤٢٥\٢) ومجمع الأنهر(٣٧٢\١) نقلاً عن القول الراجح (٣٠١\١)_

**اَلْفُرْقَةُ بِغَيْرِ طَلَاقٍ** نو فرقت واقع شو بغير دَ طلاقونه **وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ** ابوحنيفه رحمه الله او د ابويوسف رحمهما الله (۱) او دا دَ امام رحمهما الله په نزد دي

**تشريح:-** صورت د مسئلې دادې.که ،احد الزوجين، د اسلام نه مرتد شو.،العياذ بالله،نو په دواړو کي به في الحال فرقت واقع شي .برابره خبره ده.که خاوند د ښځي سره دخول کړي وی .او که دخول ئي نه وی کړی.

**وَقَالَ مُحَمَّدٌ رحمه الله: إِنْ كَانَتِ الرِّدَّةُ مِنَ الزَّوْجِ** امام محمد رحمه الله فرمائی که خاوند مرتد شو **فَهِيَ فُرْقَةٌ بِطَلَاقٍ** نو دا فرقت به دَ طلاقو وی.

**تشريح:-** د ردت په وجه چې کوم فرقت اوشو.د شيخينو رحمهما الله په نيز دا فرقت طلاق نه دې. بلکه فسخ ده.اود امام محمد رحمه الله په نيز که ردت د خاوند دا ړخه وی .نودا فرقت به طلاق وی . ګڼې نه به وی .

**هُوَ يَعْتَبِرُهُ بِالْإِبَاءِ وَالْجَامِعُ مَا بَيَّنَّاهُ** هغه په اباء عن الاسلام قياس کوی او جامع هغه ده کومه چې موږ بيان کړه **وَأَبُو يُوسُفَ رحمه الله مَرَّ عَلَى مَا أَصَّلْنَاهُ فِي الْإِبَاءِ** او ابويوسف رحمه الله په هغه اصل باند تلې دې کوم چې موږ دَ ده دَ اړخ نه په اباء کي بيان کړو

**حل اللغة:** ① **الاباء:** انکار]

**تشريح:-** امام محمد رحمه الله مرتد کيدل،د خاوند په ،اباء عن الاسلام، باندې قياس کوی .يعنی که ښځه مسلمانه شوه.او خاوند د اسلام راوړلو نه انکار اوکړلو.نودا به د خاوند داړخه طلاق وی .دغه ډول د خاوند مرتد کيدل به هم د خاوند د اړخه طلاق وی .اود مقيس اومقيس عليه په مينځ کي جامع هم دغه دې.کوم چې موږ بيان کړلو.يعنی لکه څنګه چې خاوند د اسلام راوړلونه انکار کاوه په وجه د امساك بالمعروف نه منع شو.حالانکه دې په دې قادر وو.نو قاضی به په ،تسريح بالاحسان، کي دده قائم مقام وی .او تفريق به کوی .اودا تفريق به طلاق وی .دغه ډول د ردت په وجه خاوند د ،امساك بالمعروف، نه منع شو.نو قاضی به په ،تسريح بالاحسان،کي دده قائم مقام وی .

او د امام ابويوسف رحمه الله دليل هغه دې.کوم چې په ،اباء عن الاسلام،کي تيرشو.يعنی فرقت په داسې سبب سره واقع شو.چه په هغې کي زوجين شريك دی .اوطلاق صرف د خاوند داړخه وی .د ښځې په دې کي څه دخل نه وی .نود ارتداد په وجه چې کوم تفريق وی .هغه به طلاق نه وی .بلکه فسخ د نکاح به وی .

**وَأَبُو حَنِيفَةَ رحمه الله فَرَّقَ بَيْنَهُمَا** او امام ابوحنيفه رحمه الله په دواړو کي توپير کړې دې **وَوَجْهُ الْفَرْقِ أَنَّ الرِّدَّةَ مُنَافِيَةٌ لِلنِّكَاحِ** دَ توپير دا ده چې ردت منافی دَ نکاح دې **لِكَوْنِهَا مُنَافِيَةً لِلْعِصْمَةِ** ځکه چې دا منافی دَ عصمت دې **وَالطَّلَاقُ رَافِعٌ** او طلاق رافع دَ نکاح دی **فَتَعَذَّرَ أَنْ تُجْعَلَ طَلَاقًا**، نو ردت طلاق مقرر کول متعذر دی

**حل اللغة:** ① **العصمة:** ساتنه ② **رافع:** پورته کونکې]

**تشريح:-** امام ابوحنيفه رحمه الله په،اباء عن الاسلام، او ارتداد کي توپير کړې دې.ځکه چې د خاوند د،اباء عن الاسلام ، په وجه چې کوم فرقت دې.هغه ئې طلاق ګرځولې دې.اود ارتداد په وجه چې کوم فرقت دې.هغه ئې طلاق نه دې ګرځولې.په دې دواړوکي وجه دفرق داده.چه ردت د نکاح منافی دې.ځکه چې ردت د نفس اود مال د عصمت(حفاظت) منافی دې.ځکه چې د مرتد ځان اومال مباح دې.که دې چا قتل کړلو.نو په قاتل به قصاص يا ديت واجب نه وی .اود مرتد ملك اونکاح باطليږی .او پاتې شو طلاق،نودا دنکاح منافی نه دې. ځکه چې طلاق د نکاح د تحقق نه روسته نکاح اوچتونکې دې.هم دا وجه ده.که خاوند د طلاق نه روسته نکاح کول اوغواړی .نو نکاح کولې شی .نو حاصل داچه طلاق د نکاح منافی نه دې.او مرتد کيدل د

(۱) القول الراجح هو قول الشيخين رحمهما الله كذا فی فتح القدير(۳\۲۹۷) والكفاية (۳\۲۹۷) والدرالمختار(۲\۴۲۵) والبحرالرائق (۳۷۳...) والدرالمنتقی (۱\۳۷۲) نقلاً عن القول الراجح (۱\۳۰۲)-



نکاح منافی دی .نو ردت طلاق ګرځول محال دی .

**بِخِلَافِ الْإِبَاءِ لِأَنَّهُ يَفُوتُ الْإِمْسَاكُ بِالْمَعْرُوفِ** په خلاف دَ اباء نه چې دغه فوت کوونکې دَ امساك بالمعروف ده **فَيَجِبُ التَّسْرِيحُ بِالْإِحْسَانِ عَلَى مَا مَرَّ** نو واجبيږی تسريح بالاحسان لکه چې تير شو **وَلِهٰذَا تَتَوَقَّفُ الْفُرْقَةُ بِالْإِبَاءِ عَلَى الْقَضَاءِ** په دې وجه کوم فرقت چې دَاباء په وجه سره وه هغه به په قضا موقوف وی **وَلَا تَتَوَقَّفُ بِالرِّدَّةِ** او کوم چې دَ ردت په وجه وه هغه به موقوف نه وی

**حل اللغة:** ① **الاباء:**انکار ② **الامساک:** ايسارول ③ **التسريح** خوشې کول ،پريخودل]

**تشريح:-** ددې په خلاف د اسلام راوړلو نه انکار کول دی .نودې پخپل اصلی حالت يعنی کفر باندې پاتې کيدل غواړی .په دې وجه ذمی پاته پاتې شو.نو دده وينه مباح اونه ګرځولې شوه.په دې وجه،اباء عن الاسلام ،منافی د نکاح نه دې.او ردت د نکاح منافی دې.نو ردت په ،انکار عن الاسلام، باندې قياس کول، قياس مع الفارق دې.

(۵)علامه مرغينانی رحمه الله فرمائی .چه د ،اباء عن الاسلام، په وجه خاوند د ،امساك بالمعروف، نه منع شو.نو ،تسريح بالاحسان، به واجب وی .او،تسريح بالاحسان،نوم دې د طلاق.په دې وجه ،انکار عن الاسلام، په وجه تفريق طلاق ګرځولې شوې دې.چونکه ردت د نکاح منافی دې.او ،اباءعن الاسلام، د نکاح منافی نه دې.ځکه به د ،اباء عن الاسلام، په وجه فرقت د قاضی په قضاء باندې موقوف وی .ځکه چې ،اباء عن الاسلام، د نکاح منافی نه دې.اود ارتداد په وجه فرقت به د قاضی په قضاء باندې موقوف نه وی .ځکه چې د منافی حکم په قضاء باندې موقوف نه وی .لکه د محرميت په وجه فرقت، په قضاء باندې موقوف نه وی .

**ثُمَّ إِنْ كَانَ الزَّوْجُ هُوَ الْمُرْتَدَّ** بيا که خاوند مر تد وه **فَلَهَا كُلُّ الْمَهْرِ إِنْ دَخَلَ بِهَا** نو ښځې لره به واړه مهر وی که دخول ئې ورسره کړې وه **وَنِصْفُ الْمَهْرِ إِنْ لَمْ يَدْخُلْ بِهَا** او نيم مهر به وی که دخول ئې نه وی کړې ورسره **وَإِنْ كَانَتْ هِيَ الْمُرْتَدَّةَ** او که مرتده ښځه وه **فَلَهَا كُلُّ الْمَهْرِ إِنْ دَخَلَ بِهَا** نو دَ دې دَ پاره به واړه مهر وی که دخول ئې ورسره کړې وه **وَإِنْ لَمْ يَدْخُلْ بِهَا فَلَا مَهْرَ لَهَا وَلَا نَفَقَةَ** اوکه دخول ئې ورسره نه وه کړې نو مهر ورته نشته او نه ورته نفقه شته **لِأَنَّ الْفُرْقَةَ مِنْ قِبَلِهَا** ځکه چې فرقت دَ دې دَ اړخ نه راغلې دې .

**تشريح:-** که خاوند مرتد شوې وی .اود ښځې سره دخول شوې وی .نود ښځې لپاره به کل مهرواجب وی .اود عدت نفقه به هم واجب وی .اوکه دخول نوی شوې.نود ښځې لپاره به نيم مهر وی .او که ښځه مرتده شوه.اودې سره دخول شوې وی .نود ښځې لپاره به کل مهرواجب وی .خود عدت نفقه به واجب نه وی .ځکه چې فرقت د ښځې د اړخه راغلې دې.نو ښځې ته به ناشزه (نافرمانه) ونيلې شی . اود نافرمانه لپاره نفقه نه وی .او که ددې سره دخول نه وی شوې.نود ښځې لپاره به نه مهر وی .او نه نفقه.

### د زوجينو د يوځائې مرتد کيدلو نه روسته بيا يوځائې مسلمانيدل

**قَالَ: وَإِذَا ارْتَدَّا مَعًا ثُمَّ أَسْلَمَا مَعًا** او کله چې دواړه يو ځاې مرتد شو بيا دواړه يو ځاې مسلمانان شو **فَهُمَا عَلَى نِكَاحِهِمَا اسْتِحْسَانًا** نو دواړه پخپل نکاح دی استحساناً

**تشريح:-** زوجين يوځائې مرتد شول.بيا يوځائې مسلمانان شول.نودا دواړه به په خپله نکاح پاته پاتې وی .د نکاح د تجديد اړتيا به نه وی .دا قول استحساناً دې

**وَقَالَ زُفَرُ رحمه الله: يَبْطُلُ** او زفر رحمه الله فرمائې چې نکاح به باطل شی **لِأَنَّ رِدَّةَ أَحَدِهِمَا مُنَافِيَةٌ** ځکه چې په دوی کي دَ يوردت منافی دَ نکاح دی **وَفِي رِدَّتِهِمَا رِدَّةُ أَحَدِهِمَا** او دَ دواړو په ردت کي دَ يو ردت موجود دې

**تشريح:-** .او امام زفر رحمه الله فرمائی .چه په دې صورت کي به نکاح باطل وی .هم دا قياس دې.امام شافعی امام مالك اوامام احمد رحمهم الله هم ددې قائل دی . دليل دادې.چه کله د يومرتد کيدل د نکاح منافی دی .نود دواړو

مرتد کیدل به په درجه اولی د نکاح منافی وی .ځکه چې د دوې [دوه] د ارتداد په ضمن کې د یومرتد کیدل هم موجود شو.

وَلَنَا مَارُوِيَ أَنَّ بَنِي حَنِيفَةَ ارْتَدُّوا ثُمَّ أَسْلَمُوا زمونږ دلیل هغه حدیث دې کوم چې مروی دې چې بنوحنیفه مرتد شو بیا مسلمانان شو وَلَمْ يَأْمُرْهُمُ الصَّحَابَةُ رِضْوَانُ اللهِ عَلَيْهِمْ أَجْمَعِينَ بِتَجْدِيدِ الْأَنْكِحَةِ(۱) او صحابه کرامو ﷺ اجمعین دوی ته د تجدید د نکاح حکم او نه کړو وَالِارْتِدَادُ مِنْهُمْ وَاقِعٌ مَعًا لِجَهَالَةِ التَّارِيخِ. او د دوی ارتداد یو ځای واقع شو د جهالت د تاریخ په وجه

حل اللغة: ① تحدید: نوې کول ② الانكحة: جمع د نکاح ده ]

تشریح:-زمونږ دلیل (اودا وجه د استحسان ده)حدیث دې.حاصل داچه د بنوحنیفه(چه دا د مسیلمه کذاب د قوم یوه وړه شان قبیله ده) خلګ د زکاة د انکار کاوه په وجه مرتدشو.بیا خلیفة المسلمین حضرت ابوبکرصدیق ﷺ دوی اړخ ته د صحابه کرامو ﷺ یولښکر اولیګلو.نو دوی واړه مسلمانان شول.خوصحابو ﷺ دوی ته د نکاح د تجدیدحکم ورنکړو.په دې باندې د ټولو صحابو ﷺ اتفاق وو.نود صحابو ﷺ اجماع شوه.اود اجماع په وجه قیاس پریخودلې شی.

ﷺخو که څوك اشکال اوکړی .چه ددوی ارتداد په یو وخت نه وو.نوپه دې واقعه سره استدلال څنګه صحیح کیږی ؟ نوځواب دادې.چه د تقدم او تاخر په اړه کې تاریخ مجهول شو.نوهم دا به وئیلې شی .چه په یو وخت کې مرتد شوی وو.

وَلَوْ أَسْلَمَ أَحَدُهُمَا بَعْدَ الِارْتِدَادِ مَعًا او که په دوی کې یو مسلمان شو د ارتداد نه الرِّدَّةِ نو په دوی کې نکاح فاسد شو د بل په ردت د اصرار په وجه سره فَسَدَ النِّكَاحُ بَيْنَهُمَا لِإِصْرَارِ الْآخَرِ عَلَى لِأَنَّهُ مُنَافٍ كَابْتِدَائِهَا ځکه چې اصرار په ردت منافی د نکاح دې د ابتداء د ردت پشان .

حل اللغة: ① الاصرار: تاکید ،باربار وئیل ② ابتداء: شروع]

تشریح:-اوکه د ارتداد نه روسته په دې دواړو کې یوکس مسلمان شو.نو په دواړوکې به نکاح فاسد شی .یعنی په دواړو کې به فرقت واقع شی .د آخر په ردت کې د پاتې کیدلو په وجه.ځکه چې په ردت باندې کلك پاتې کیدل داسې د نکاح منافی دی .لکه څنګه چې د ردت ابتداء دنکاح منافی ده.

## باب القسم

تشریح:- مصنف دهدایه رحمه الله چې هرکله د نساء دتعدد جواز بیان کړلو.نو ضروری خبره ده.چه ددوی په حق کې ژباړه:- (دا) باب د قسم ( په کښې ) دې .

هغه عدل ذکر کړې شی .کوم چې د شارع د اړخه وارد شوې دې.په دې وجه ، باب القسم، منعقد کړې شو. ،القسم، د قاف په فتح سره مصدر دې.د قسم نه مراد په منکوحاتوکې برابری کول دی .د ،عدل بین النساء، نوم هم قسم دې.او قسم په کسره د قاف سره د برخه په معنی کې دې.او ،قسم، د قاف اوسین په فتح سره د یمین په معنی کې دې.اوقسم نوم دې.د مقاسمت او انقسام.

ﷺمطلقاً حقیقت عدل ممتنع دې.لکه چې الله تعالی فرمائی . ((وَلَنْ تَسْتَطِيعُوا أَنْ تَعْدِلُوا بَيْنَ النِّسَاءِ وَلَوْ حَرَصْتُمْ فَلَا تَمِيلُوا كُلَّ الْمَيْلِ فَتَذَرُوهَا كَالْمُعَلَّقَةِ)) اوستاسو نه خودا هیڅ کله نشی کیدلې.چه په ټولو بیبیانوکې برابری اوساتی:اګرچه ستاسو څومره زړه اوغواړی .نوتاسو خو بیخی یو اړخ ته مه مائل کیږئ. چې په دې سره دا

۱) غریبه الزیلعی رحمه الله (نصب الرایة (۲۸۰/۳)_



د نساء د تعدد په وخت وجوب عدل قرآن اوحدیث داسې کړی.لکه څوك هلته کې بانده وی .(بیان القرآن) د جواز نه روسته الله ﷺ فرمائی ،که تاسو ته احتمال ددې خبرې وی .چه عدل به اونکړې شئ.نو بیا په یوه دواړو نه ثابت دې.د قرآن پاك آیت دې.((فَإِنْ خِفْتُمْ أَلَّا تَعْدِلُوا فَوَاحِدَةً أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ)) دځلورو ښځو سره د نکاح بی بی باندې بسوالې اوکړئ.چه کومه وینځه ستاسو په ملك کې وی .هم دا دې وی ،مطلب دادې.که د عدل نه کولوغالب احتمال وی .نود ډیرو ښځو سره نکاح مه کوئ.په دې وجه ممنوع ده.چه دا کس به ګناهګار شی .په دې وجه ممنوع نه ده.چه نکاح صحیح نه ده.نکاح یقیناً صحیح ده.(بیان القرآن)

ﷺددې آیت نه معلومه شوه.چه د ګڼرو بیبیانو په صورت کې عدل اومساوات ضروری دې.اصحاب دسنن اربعه د حضرت عائشه رضي الله عنها نه روایت کړې دې.[قالت كان رسول الله ﷺ يقسم فيعدل ويقول اللهم هذا قسمي فيما املك فلاتلمني فيما تملك ولا أملك،يعنى القلب أى زيادة المحبة]حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائی .چه رسول الله ﷺ به د بیبیانود وار ساتنه ساتلو.او عدل به ئې کولو.او فرمائیل به ئې.چه اې الله دا زما قسم دې.په هغه شی کې چې زه ئې مالك یم.نو ما مه ملامته کوې.په هغه څیزکې چې ته ئې مالك ئې.او زه ئې مالك نه یم.یعنی زړه.یعنی زیات محبت، ددې حدیث نه معلومیږی .چه د زیات محبت نه علاوه واړه شیان (څیزونه ) د سړی په ملك اوقدرت کې دی .د ابوهریره ﷺ حدیث دې.[أنه قال من كانت له إمرأتان فمال إلى أحدهما جاء يوم القيامة وشقه مائل أى مفلوج] نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی .د کوم کس چې دوې [دوه] ښځې وی .بیا دې په دې دواړوکې یو اړخ ته مائل شو.نود قیامت په ورځ به په داسې حال کې راشی .چه دده یو اړخ به مفلوج وی .(فتح القدیر)

### د دوې [دوه] ښځو په صورت کې دعدل وجوب

وَإِذَا كَانَ لِلرَّجُلِ امْرَأَتَانِ حُرَّتَانِ هر کله چې د چا په نکاح کې دوې [دوه] ښځې وی حرې فَعَلَيْهِ أَنْ يَعْدِلَ بَيْنَهُمَا فِي الْقَسْمِ بِكْرَيْنِ كَانَتَا أَوْ ثَيِّبَيْنِ نو په ده واجب دی چې د دوی په مینځ کې په وار کې برابرې کوی .دواړه پیغلې وی یا کونډې وی أَوْ إِحْدَاهُمَا بِكْرًا وَالْأُخْرَى ثَيِّبًا او یا یوه پیغله وی او بله کونډه وی

تشریح:- صورت د مسئلې دادې.چه دیوکس دوې [دوه] یا زیاتې آزادې بیبیانې وی .که دواړه باکره وی .او که دواړه ثیبه وی .یا یوه باکره وی .او بله ثیبه وی .نو په دوی کې په انصاف سره ویش کول واجب دی .په دلیل کې

لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ "مَنْ كَانَتْ لَهُ امْرَأَتَانِ وَمَالَ إِلَى إِحْدَاهُمَا فِي الْقَسْمِ ځکه چې د نبی کریم ﷺ ارشاد دې د چا چې دوې [دوه] ښځې وی او هغه په دوی کې یوې اړخ ته مائل شی جَاءَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَشِقُّهُ مَائِلٌ(۱) نو د قیامت په ورځ به په داسې حال کې راځی چه د ده نیمه برخه به مفلوجه وی وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا {أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ كَانَ يَعْدِلُ فِي الْقَسْمِ بَيْنَ نِسَائِهِ(۲)او د حضرت عائشې رضي الله عنها نه روایت دې چې نبی

۱) من حدیث أبی هریرة ﷺ أخرجه أبوداود فی النكاح باب ۳۸ رقم ۲۱۳۳ والترمذی فی النكاح باب ۴۱ رقم ۱۱۴۱ والنسائی فی عشرة النساء باب میل الرجل إلى بعض نسائه دون بعض وابن ماجه فی النكاح باب ۴۷ رقم ۱۹۶۹ والدارمی فی النكاح باب ۲۴ واحمد فی المسند (۲۹۵/۲)_

۲-من حدیث أبی هریرة رضی الله تعالى عنه أخرجه أبوداود فی النكاح باب ۳۸ رقم ۲۱۳ والترمذی فی النكاح باب ۴۱ رقم ۱۱۴۱ والنسائی فی عشرة النساء باب میل الرجل إلى بعض نسائه دون بعض وابن ماجه فی النكاح باب ۴۷ رقم ۱۹۶۹ والدارمی فی النكاح باب ۲۴ واحمد فی المسند ( ۲ / ۲۹۵ ) أخرجه أبوداود فی النكاح باب ۳۸ رقم ۲۱۳۴ والترمذی فی النكاح باب ۴۱ رقم ۱۱۴۰ والنسائی فی عشرة النساء باب میل الرجل إلى بعض نسائه دون بعض وابن ماجه فی النكاح باب ۴۷ رقم ۱۹۷۱

كريم ﷺ به دَ خپلو بيبيانو په مينځ كي په وار كي برابري كولو وَكَانَ يَقُولُ: اَللّٰهُمَّ هٰذَا قَسْمِي فِيمَا أَمْلِكُ
فرمائيل به ئ يا الله دا حما ويش دې په هغې كار كي چې زهٔ به نې مالك يم فَلَا تُؤَاخِذْنِي فِيمَا لَا أَمْلِكُ: او
مؤاخذه مه كوې په هغې كي چې زهٔ ئ مالك نه يم يَعْنِي زِيَادَةَ الْمَحَبَّةِ وَلَا فَصْلَ فِيمَا رَوَيْنَا يعنى دَ زياتى محبت او په
ماروينا كي څه تفصيل نشته.[1] نو حما

**حل اللغة:** ① شق: نيم بدن ② القسم: ويش ③ لاتواخذني: ته ما مه نيسې]

**تشريح:-** صاحب دهدايه رحمه الله دوې [دوه] حديثونه پيش كړې دى .د دواړه حديثونو مضمون د عنوان لاندې تير شو .هلته كي نې اوګورئ.د [زيادة المحبة] الفاظ،د حديث الفاظ نه دى .بلكه د راويانو د اړخه تفسير دې، چونكه په حديث كي په باكره او ثيبه كي هيڅ تفصيل نشته.په دې وجه ددې په حكم كي هم هيڅ توپير اونكړې شو.

## په مخكني او نوې ښځه كي فرق نه كول

وَالْقَدِيمَةُ وَالْجَدِيدَةُ سَوَاءٌ لِإِطْلَاقِ مَا رَوَيْنَا او زړه او نوې ښځه برابر اه دَ دې حديث دَ اطلاق په وجه سره كوم چې موږ روايت كړو

**تشريح:-** لكه څنګه چې د باكره اوثيبه په مينځ كي په ويش كي عدل واجب دې.دغه ډول زموږ په نيز د نوې او زړه مينځ كي هم برابرى ساتل ضروري دى .
زموږ دليل هغه حديثونه دى .كوم چې صاحب دهدايه رحمه الله په پورتنۍ مسئله كي بيان كړى دى .يعنى دا دواړه حديثونه مطلق دى .نود نوې اوپخوانۍ په مينځ كي به هيڅ توپير نه كيږى .

وَلِأَنَّ الْقَسْمَ مِنْ حُقُوقِ النِّكَاحِ او خكه چې بارى دَ حقوقو دَ نكاح نه دې وَلَا تَفَاوُتَ بَيْنَهُنَّ فِي ذٰلِكَ او په دې حق كي دَ ښځو په مينځ كي څه تفاوت نشته

**تشريح:-** اودليل عقلى دادې.چه نمبرمقرر كول،د نكاح د حقوقو څخه دى .لكه څنګه چې نفقه د نكاح د حقوقوڅخه ده.او په دې حق كي د باكره او ثيبه ،جديده او قديمه په مينځ كي هيڅ توپير نشته.لكه څنګه چې په مسلمه اوكتابيه، بالغه اومراهقه،مجنونه او عاقله، بيماره او صحيحه په مينځ كي هيڅ توپير نشته.خكه چې ددې ښځو په مينځ كي ددې حق په سبب كي مساوات دې.او سبب هغه حلت دې.كوم چې په نكاح سره ثابت شوې دى.

وَالْاِخْتِيَارُ فِي مِقْدَارِ الدَّوْرِ إِلَى الزَّوْجِ او اختيار دَ چكر په مقدار كي خاوند لره دې لِأَنَّ الْمُسْتَحَقَّ هُوَ التَّسْوِيَةُ دُونَ طَرِيقِهِ. وَالتَّسْوِيَةُ الْمُسْتَحَقَّةُ فِي الْبَيْتُوتَةِ خكه چې واجب برابرى ده نه چې دَ دې طريقه او برابر ى په شپه تير ولو كي دَه لَا فِي الْمُجَامَعَةِ نه چې په جماع كاوه كي لِأَنَّهَا تُبْتَنٰى عَلَى النَّشَاطِ خكه چې مجامعت په نشاط مبنى دې.

**حل اللغة:** ① الدور: چكرلګول ② التسوية: برابرى ③ البيتوتة: شپه تيرول ④ المجامعة: جماع كول،وطى كول]

**تشريح:-** اود وار په مقرركولوكي خاوند ته اختيار دې.كه زړه نې غواړى .نو يوه يوه ورځ وار دې مقرر كړى .او كه خوښه نې وى .دوې [دوه] دوه، يا درې درې يا څلور څلور ورځې دې مقرر كړى .او چونكه ددې ويش

والدارمى فى النكاح باب ٢٥ والحاكم فى المستدرك ( ٢ / ١٨٧ ) وأحمد فى المسند ( ٦ / ١٤٤ ) والبيهقى فى السنن الكبرى ( ٧ / ٤٧٨ )

[1] أخرجه أبوداود فى النكاح باب ٣٨ رقم ٢١٣٤ والترمذى فى النكاح باب ٤١ رقم ١١٤٠ والنسائى فى عشرة النساء باب ميل الرجل إلى بعض نسائه دون بعض وابن ماجه فى النكاح باب ٤٧ رقم ١٩٧١ والدارمى فى النكاح باب ٢٥ والحاكم فى المستدرک (١٨٧/٢) وأحمد فى المسند (١٤٤/٦) والبيهقى فى السنن الكبرى (٤٨٧/٧)_



وجوب د تسلۍ جوړولو دپاره،اود وحشت لرې كاوه لپاره دې.په دې وجه ضروري دى .چه د نژدې مودې اعتبار اوكړې شى .او زما په خيال د يوې هفتې نه زيات وار مقرركول د تكليف باعث دې.نود يوې هفتې نه زيات مقرر كاوه نه احتراز كول مناسب دى .خو كه دا ښځې په زياتوباندې راضى شى .نو په زياتوكي هيڅ باك نشته.خومناسب دادى .چه دا مقدار د ايلاءمودې(څلور مياشتې) ته اونه رسى . خاوند ته د اختيار وركاوه وجه داده.چه په خاوند باندې برابرى واجب ده.خود برابرۍ طريقه واجب نه ده.او برابرى صرف په شپه تيرولو كي ده.په جماع كولوكي نه ده.يعنى ټولوښځوسره به برابرشپې تيره وى .په دې شپوكي جماع كول شرط نه دى .خكه چې جماع د تبعيت په ښه والى اوخوشحالۍ باندې موقوف ده.اودا دده په اختياركي نه دى .والله اعلم بالصواب

## په آزاده او وينځه ښځه كي تقسيم

وَإِنْ كَانَتْ إِحْدَاهُمَا حُرَّةً وَالْأُخْرٰى أَمَةً او كه يوه په دغو كي آزاده وه او بله وينځه وه فَلِلْحُرَّةِ الثُّلُثَانِ مِنَ الْقَسْمِ نو دَ آزادې دَ پاره به دوې [دوه] ثلثه وى دَ وارنه وَلِلْأَمَةِ الثُّلُثُ او دَ وينځې دَ پاره يو ثلث بِذٰلِكَ وَرَدَ الْأَثَرُ[1] .په دې سره اثر وارد شوې دې

**تشريح:-** كه د يوكس په نكاح كي يوه آزاده ښځه وى .او يوه وينځه وى .نو په ويش كي به په دريوكي دوې [دوه] برخې د آزادې وى .او يوه برخه به د وينځې وى .په دليل كي نې اثرپيش كړې دې.علامه ابن الهمام رحمه الله په الكفايه،كي ليكلى دى . چې هم دا فيصله صديق اكبر اوحضرت على (رض) كړې ده.

وَلِأَنَّ حِلَّ الْأَمَةِ أَنْقَصُ مِنْ حِلِّ الْحُرَّةِ او خكه چې دَ وينځې حلت دَ آزادې دحلت نه كم دې فَلَا بُدَّ مِنْ إِظْهَارِ النُّقْصَانِ فِي الْحُقُوقِ نو په حقوقو كي دَ كمى اظهار ضروري دې : وَالْمُكَاتَبَةُ وَالْمُدَبَّرَةُ وَأُمُّ الْوَلَدِ بِمَنْزِلَةِ الْأَمَةِ او مكاتبه او مدبره او ام ولده دوينځې په مرتبه كي دى ؛لِأَنَّ الرِّقَّ فِيهِنَّ قَائِمٌ خكه چې په دوى كي رقيت موجود دې .

**تشريح:-** دليل عقلى دادې.چه د وينځې حلت د آزادې ښځې د حلت نه كم وى .نو په حقوقوكي هم نقصان ښكاره كول ضروري دى .او كه وينځه د بل كس مكاتبه،يا مدبره، يا ام ولد وى .نودا هم د وينځې په مرتبه كي ده. خكه چې په دې كي رقيت موجود دې.

## د سفر په صورت كي په ښځو كي دقرعه اندازۍ استحباب

قَالَ وَلَا حَقَّ لَهُنَّ فِي الْقَسْمِ حَالَةَ السَّفَرِ او هيڅ حق نشته ښځو لره دَ وار په سفر كي فَيُسَافِرُ الزَّوْجُ بِمَنْ شَاءَ مِنْهُنَّ نو خاوند به سفر كوى په دوى كي دَ چا سره چې غواړى وَالْأَوْلٰى أَنْ يُقْرِعَ بَيْنَهُنَّ او غوره دا ده چې قرعه اندازى اوكړى خسنرې ورته اوكړى فَيُسَافِرُ بِمَنْ خَرَجَتْ قُرْعَتُهَا نو سفر دې كوى دَ هغې سره دَ كومې چې خسنرې او خيژى

**تشريح:-** مسئله داده.كه ديوكس ګنړې بيبيانې وى .نود سفر په حالت كي ددوى لپاره په ويش كي هيڅ حق نشته.په دوى كي چې د كومې سره غواړى .سفر كولې شى .غوره داده.چه په دوى كي قرعده اندازى اوكړى .چه دكوم يوكس د نوم قرعه راوځى .هغې سره دې سفر اوكړى .دا د احنافو رحمهم الله مذهب دې.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رحمه الله الْقُرْعَةُ مُسْتَحَقَّةٌ امام شافعى رحمه الله فرمائى چې خسنړې واجب حق دې:؛لِمَا رُوِيَ {أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ كَانَ إِذَا أَرَادَ سَفَرًا أَقْرَعَ بَيْنَ نِسَائِهِ}[2] خكه روايت دې چې نبى كريم ﷺ به هر كله دَ سفر اراداه

[1] عن على رضي الله عنه أخرجه ابن أبى شيبة وعبدالرزاق فى مصنفيهما والدارقطنى ثم البيهقى فى سننيهما ( نصب الراية ٣ / ٢٨٣ ).

کریم ﷺ به د خپلو بیبیانو په مینځ کې په وار کې برابرۍ کولو وَكَانَ يَقُولُ: اَللّٰهُمَّ هٰذَا قَسْمِيْ فِيْمَا أَمْلِكُ او فرمائیل به ئې یا الله داځما ویش دې په هغې کار کې چې زه به ئې مالك یم فَلَا تُؤَاخِذْنِيْ فِيْمَا لَا أَمْلِكُ(١) نو ځما مؤاخذه مه کوې په هغې کې چې زه ئې مالك نه یم يَعْنِيْ زِيَادَةَ الْمَحَبَّةِ وَلَا فَصْلَ فِيْمَا رَوَيْنَا یعنی دَ زیاتی محبت او په ماروینا کې څه تفصیل نشته .

حل اللغة: ① شق: نیم بدن ② القسم:ویش ③ لاتواخذني:ته ما مه نیسې]

تشریح:- صاحب دهدایه رحمه الله دوې [دوه] حدیثونه پیش کړې دی .د دواړه حدیثونومضمون د عنوان لاندې تیر شو .هلته کې ئې اوګورئ.د [زیادة المحبة] الفاظ،د حدیث الفاظ نه دی .بلکه د راویانو د اړخه تفسیر دې. چونکه په حدیث کې په باکره او ثیبه کې هیڅ تفصیل نشته.په دې وجه ددې په حکم کې هم هیڅ توپیر اونکړې شو.

## په مخکې نۍ او نوې ښځه کې فرق نه کول

وَالْقَدِيْمَةُ وَالْجَدِيْدَةُ سَوَاءٌ لِإِطْلَاقِ مَا رَوَيْنَا او زړه او نوې ښځه برابر اه دَ دې حدیث دَ اطلاق په وجه سره کوم چې موږ روایت کړو

تشریح:- لکه څنګه چې د باکره اوثیبه په مینځ کې په ویش کې عدل واجب دې.دغه ډول زموږ په نیز د نوې او زړه مینځ کې هم برابری ساتل ضروری دی .
زموږ دلیل هغه حدیثونه دی .کوم چې صاحب دهدایه رحمه الله په پورتنۍ مسئله کې بیان کړی دی .یعنی دا دواړه حدیثونه مطلق دی .نود نوې اوپخوانۍ په مینځ کې به هیڅ توپیر نه کیږی .

وَلِأَنَّ الْقَسْمَ مِنْ حُقُوْقِ النِّكَاحِ او ځکه چې باری دَ حقوقو دَ نکاح نه دې وَلَا تَفَاوُتَ بَيْنَهُنَّ فِيْ ذٰلِكَ او په دې حق کې د ښځو په مینځ کې څه تفاوت نشته

تشریح:- اودلیل عقلی دادې.چه نمبرمقرر کول،د نکاح د حقوقو څنې دی .لکه څنګه چې نفقه د نکاح د حقوقوڅنې ده.او په دې حق کې د باکره او ثیبه ،جدیده او قدیمه په مینځ کې هیڅ توپیر نشته.لکه څنګه چې په مسلمه اوکتابیه، بالغه اومراهقه،مجنونه او عاقله، بیماره او صحیحه په مینځ کې هیڅ توپیر نشته.ځکه چې ددې ښځو په مینځ کې ددې حق په سبب کې مساوات دې.او سبب هغه حلت دې.کوم چې په نکاح سره ثابت شوې دی.

وَالْاِخْتِيَارُ فِيْ مِقْدَارِ الدَّوْرِ إِلَى الزَّوْجِ او اختیار دَ چکر په مقدار کې خاوند لره دې لِأَنَّ الْمُسْتَحَقَّ هُوَ التَّسْوِيَةُ دُوْنَ طَرِيْقِهِ. وَالتَّسْوِيَةُ الْمُسْتَحَقَّةُ فِي الْبَيْتُوْتَةِ ځکه چې واجب برابری ده نه چې دَ دې طریقه او برابر ی په شپه تیر ولو کې ده لَا فِي الْمُجَامَعَةِ نه چې په جماع کاوه کې لِأَنَّهَا تُبْتَنٰى عَلَى النَّشَاطِ ځکه چې مجامعت په نشاط مبنی دې.

حل اللغة: ① الدور:چکرلګول ② التسوية: برابری ③ البيتوتة:شپه تیرول ④ المجامعة: جماع کول،وطی کول]

تشریح:- اود وار په مقررکولوکې خاوند ته اختیار دې.که زړه ئې غواړی .نو یوه یوه ورځ وار دې مقرر کړی .او که خوښه ئې وی .دوې [دوه] دوه، یا درې درې یا څلور څلور ورځې دې مقررکړی .او چونکه ددې ویش

---

والدارمی فی النکاح باب ۲۵ والحاکم فی المستدرک ( ۲ / ۱۸۷ ) وأحمد فی المسند ( ۶ / ۱٤٤) والبیهقی فی السنن ... / ٤۷۸ )

١) أخرجه أبوداود فی النکاح باب ۳۸ رقم ۲۱۳٤ والترمذی فی النکاح باب ٤١ رقم ١١٤٠ ... میل الرجل إلى بعض نسائه دون بعض وابن ماجه فی النکاح باب ٤۷ رقم ١٩٧١ والدارمی ... المستدرک (۱۸۷/۲) وأحمد فی المسند (۱٤٤/٦) والبیهقی فی السنن الکبری (٤٨۷/۷) ...



... چه د نږدې وجوب د تسلۍ جوړولو دپاره،اود وحشت لرې کاوه لپاره دې.په دې وجه ضروری دی .چه د ... اعتبار اوکړې شی .او زما په خیال د یوې هفتې نه زیات وار مقررکول د تکلیف باعث دې.نود یوې ... زیات مقرر کاوه نه احتراز کول مناسب دی .خو که دا ښځې په زیاتوباندې راضی شی .نو په زیاتو ... باك نشته.خومناسب دادی .چه دا مقدار د ایلاءمودې(څلور میاشتو) ته اونه رسی . خاوند ته د اخ... کاوه وجه داده.چه په خاوند باندې برابری واجب ده.خود برابرۍ طریقه واجب نه ده.او برابری صرف ... تیرولو کې ده.په جماع کولوکې نه ده.یعنی ټولوښځوسره به برابرشپې تیره وی .په دې شپوکې جم... شرط نه دی .ځکه چې جماع د تبعیت په ښه والی اوخوشحالۍ باندې موقوف ده.اودا دده په اختیا... دی .والله اعلم بالصواب

## په آزاده او وینځه ښځه کې تقسیم

وَإِنْ كَانَتْ إِحْدَاهُمَا حُرَّةً وَالْأُخْرٰى أَمَةً او که یوه په دغو کې آزاد ه وه او بله وینځه وه فَلِلْحُرَّةِ الثُّلُثَانِ مِنَ الْ... آزادې دَ پاره به دوې [دوه] ثلثه وی دَ وارنه وَلِلْأَمَةِ الثُّلُثُ او دَ وینځې دَ پاره یو ثلث بِذٰلِكَ وَرَدَ الْأَثَرُ(١).په د... اثر وارد شوې دې

تشریح:- که د یوکس په نکاح کې یوه آزاده ښځه وی .او یوه وینځه وی .نو په ویش کې به په دریو ک... [دوه] برخې د آزادې وی .او یوه برخه به د وینځې وی .په دلیل کې ئې اثرپیش کړې دې.علامه ابن ... رحمه الله په الکفایه،کې لیکلی دی . چې هم دا فیصله صدیق اکبر اوحضرت علی (رض) کړې ده.

وَلِأَنَّ حِلَّ الْأَمَةِ أَنْقَصُ مِنْ حِلِّ الْحُرَّةِ او ځکه چې دَ وینځې حلت دَ آزادې دحلت نه کم دې فَلَا بُدَّ مِنْ ... النُّقْصَانِ فِي الْحُقُوْقِ نو په حقوقو کې دَ کمی اظهار ضروری دې : وَالْمُكَاتَبَةُ وَالْمُدَبَّرَةُ وَأُمُّ الْوَلَدِ بِمَنْزِلَةِ الْ... مکاتبه او مدبره او ام ولده دوینځې په مرتبه کې دی ،لِأَنَّ الرِّقَّ فِيْهِنَّ قَائِمٌ ځکه چې په دوی کې ... موجود دې .

تشریح:- دلیل عقلی دادې.چه د وینځې حلت د آزادې ښځې د حلت نه کم وی .نو په حقوقوکې هم نق... ښکاره کول ضروری دی .او که وینځه د بل کس مکاتبه،یا مدبره، یا ام ولد وی .نودا هم د وینځې په م... کې ده. ځکه چې په دې کې رقیت موجود دې.

## د سفر په صورت کې په ښځو کې دقرعه اندازۍ استحباب

قَالَ وَلَا حَقَّ لَهُنَّ فِي الْقَسْمِ حَالَةَ السَّفَرِ او هیڅ حق نشته ښځو لره دَ وار په سفر کې فَيُسَافِرُ الزَّوْجُ بِمَنْ شَاءَ مِنْهُنَّ نو خاوند به سفر کوی په دوی کې دَ چا سره چې غواړی خسنړې. ورته اوکړی وَالْأَوْلٰى أَنْ يُقْرِعَ بَيْنَهُنَّ او غوره دا ده چ... فَيُسَافِرُ بِمَنْ ...

تشریح:- مسئله داده ... سره دَ کومې چې خسنړې او خیرې نشته.په دوی ک... کې ددوی لپاره په ویش کې هیڅ حق ... چه دکوم ... داده.چه په دوی کې قرعه اندازی اوکړی ... .دا د احنافو رحمهم الله مذهب دی.

... مائی چې خسنړې واجب حق دې؛ لِمَا رُوِيَ أَنَّ النَّبِيَّ ... دی چې نبی کریم ﷺ هر کله د سفر ارادہ ...

كوله نو خسنړې به ي كاوه خپلو بيبيانو لره

حل اللغة* ① مستحقه: واجب، ضروري ② اقوع: خسنړې به اچولو]

تشريح:- دامام شافعي رحمه الله مذهب دادې چه قرعه اندازي كول واجب دي. تردې كه بغير د قرعه اندازئ نې د يوې كسې سره سفر اوكړو. نود سفر دا موده به محبوسه وي. يعنى هم دومره موده به د هغه ښځې سره قيام كوي. چه د هغې سره نې سفر نه وي كړې.

د امام شافعي رحمه الله دليل د عائشه رضي الله عنها حديث دې چه نبى كريم ﷺ به كله د سفر اراده كوله. نو په خپلو بيبيانوكي به نې قرعه اندازي كوله. نود كوم يوې نوم به چې راوتلو. د هغې سره به نې سفر كولو. امام شافعي رحمه الله د نبى كريم ﷺ د دې فعل نه د قرعه اندازئ په وجوب باندې استدلال كوي.

إلا أنا نقول: إن القرعة لتطييب قلوبهن مگر مونږ داوايو چې خسنړې د بيبيانو د دلجوئى د پاره وه فيكون من باب الاستحباب نو دا به د قبيلې د استحباب نه وي

حل اللغة* ① القرعة: خسنړې اچول ② تطييب: خوشحاله كول]

تشريح:- خو زمونږ د اړخه خواب دادې چه د نبى كريم ﷺ په خپلو بيبيانوكي قرعه اندازي كول صرف ددوى د زړه خوشحالولو لپاره وو. نودا قرعه اندازي به استحباباً وي. وجوباً به نه وي، دويمه خبره داده چه په نبى كريم ﷺ باندې قسم (وار مقرر كول) دسره واجب نه وو. لكه چې د الله تعالى ارشاد دې. ((ترجى من تشاء منهن وتؤوى إليك من تشاء)) يعنى په دوى كي چې تاسو (ﷺ) څوك غواړئ. د خان نه نې جلا ساتئ. او څوك چې غواړې. نژدې نې ساته. (بيان القرآن) ددې آيت نه معلوميږى. چه نبى كريم ﷺ د قسم (نمبر) پابند نه وو. حافظ عبد العظيم منذري ذكر كړى دى. چه نبى كريم ﷺ سوده، جويريه، ام حبيبه، صفيه، او ميمونه رضي الله عنهن جلا اوساتلې. او عائشه رضي الله عنها او نورې بيبيانې نې نژدې اوساتلې. نو هركله چې په نبى كريم ﷺ باندې قسم د سره واجب نه دې. نو قرعه اندازي به څنګه واجب وي.

وهذا، لأنه لا حق للمرأة عند مسافرة الزوج او دا څكه چې سړى د سفر په وخت كي د ښځې هيڅ حق نشته ألا يرى أن له أن لا يستصحب واحدة منهن آيا ته نه ګورې چې خاوند لره جائز دى چې يوه هم د خان سره بونه څى فكذا له أن يسافر بواحدة منهن نو دغسې د دهٔ د پاره به جائز وي چې د يوې سره سفر او كړى ولا يحتسب عليه بتلك المدة. وإن رضيت إحدى الزوجات بترك قسمها لصاحبتها جاز او دا مده به په دې باند حساب نه وي، كه راضى شوه يوه بى بى په ښځو كي په پريخودو د خپل وار خپلې بنې ته نو دا جائز دى

تشريح:- او قرعه اندازي د استحباب د باب نه په دې وجه هم ده. چه د خاوند د سفر كاوه په وخت د ښځې هيڅ حق نشته. كه خاوند په دوى كي هيڅ څوك خپل خان سره په سفر كي بونځي. نوده ته ددې اختيار شته دې. دغه ډول ددې اختيار هم شته. چه په دوى كي د يوكسې سره سفر اوكړى. اودا موده به محسوبه نه وي. يعنى دا موده به د وار په موده كي نه حسابيږى اوكه په منكوحاتوكي يوې كسې خپل وار خپلې يوې بنې ته وركړو. نودا شرعاً جائز دى.

لأن سودة بنت زمعة رضي الله عنها سألت رسول الله عليه الصلاة والسلام أن يراجعها څكه چې حضرت سوده بنت زمعه

[1]) من حديث عائشة رضي الله عنها أخرجه البخاري في الهبة باب ١٥ ومسلم في فضائل الصحابة رقم ٨٨ وأبوداود في النكاح باب ٣٨ رقم ٢١٣٨ وابن ماجه في النكاح باب ٤٧ والأحكام باب ٢٠ والدارمي في الجهاد باب ٣٠ وأحمد في المسند (

١١٤ / ٦



نبى كريم ﷺ ته درخواست كړې وه چې دې ته مراجعت او فرمائى وتجعل يوم نوبتها لعائشة رضي الله عنها نو دا به خپل وار د عائشې رضي الله عنها د پاره كړى

تشريح:- دليل دادې چه د حضرت سوده رضي الله عنها نه روايت دې چه رسول الله ﷺ سوده بنت زمعه ته طلاق وركړو. هركله چې نبى كريم ﷺ د لمونځ لپاره اووتلو. نوحضرت سوده رضي الله عنها ددوى ﷺ كپړه اونيوله. او وې وئيل چه په خدائې ماته د سړو هيڅ حاجت نشته. خو زما مراد دادې چه زما حشر ستا په بيبيانوكي وى. او درخواست نې اوكړو. چه اې د الله رسوله ﷺ ! تاسو سوده رضي الله عنها ته رجعت اوكړئ. او سوده رضي الله عنها به د خپل وار ورخ د عائشه رضي الله عنها لپاره مقرر كړى.

ولها أن ترجع في ذلك او دې بى بى ته دا اختيار دې چې خپل وار كي رجوع او كړى لأنها أسقطت حقا لم يجب بعد څكه چې دې داسې حق ساقط كړې دې كوم چې لا واجب شوې نه وه فلا يسقط، والله أعلم نو په دې وجه ساقط به نه وي.

تشريح:- كومې ښځې چې د خپل وار ورځ خپلې بنې ته وركړه. هغې له دا جائز دى. چه خپل حق واپس واخلى. څكه چې دې خپل داسې حق ساقط كړو. چه تر اوسه پورې واجب نه وو. نودا به ساقط كيږى هم نه. نودا رجوع به د خپل وار نه منع كول وي. د يوساقط شوى شى واپس اخستل به نه وي.

## كتاب الرضاع

ژباړه:- دا كتاب په بيان د رضاعت كښې دې.

تشريح:- رضاع بفتح الراء اصل دې. اوبكسر الراء يولغت دې. په فصيح لغت كي د باب سمع نه دې. او اهل نجد وائى. چه د باب ضرب نه دې. رضاعت په لغت كي د سينې نه شيدې رولو ته وائى. اوپه شريعت كي د رضيع د ښځې د سينې نه په خاص خاص وخت كي شيدې رودلو ته وائى. د ښځې د سينې قيد لګولو سره د خناورد سينې نه احتراز راغلو. اود نوكه د وزه وغيره شيدې اوڅكى. نوپه دې سره رضاعت نه ثابتيږى. اود مخصوص وخت نه د رضاع موده مراد ده. ددې په تحديد كي د عالمانو اختلاف دې. كوم چې به انشاء الله وړاندې بيانولې شى.

### په رضاعت سره د حرمت ثبوت

قليل الرضاع وكثيره سواء إذا حصل في مدة الرضاع د رضاعت قليل او كثير برابر دى هر كله چې دا حاصل شى په موده د رضاعت كي تعلق به التحريم نو تحريم به وربورې متعلق شى

تشريح:- المذهب في قدر الرضاع الثابت للحرمة ⊛ د پيوپه مقدار كي چې په هغې سره حرمت رضاعت ثابتيږى. په دې كي اختلاف دې. ① احناف رحمهم الله فرمائى. چه په مطلق شيدې وركاوه يا رودلو سره حرمت رضاعت ثابتيږى. كه كم وى اوكه زيات وى. خوپه دې شرط چې د رضاعت په موده كي وى. حسن بصرى، سعيدبن المسيب، وكيع، عبدالله بن مبارك او زيات جمهور فقهاء رحمهم الله ددې قائلين دى.

وقال الشافعي رحمه الله: لا يثبت التحريم إلا بخمس رضعات، لقوله عليه الصلاة والسلام: او امام شافعي رحمه الله فرمائى چې نه ثابتيږى تحريم مګر په پنځه پيرې تى رابنكودو سره د نبى كريم ﷺ د ارشاد په وجه سره لا تحرم المصة ولا المصتان ولا الإملاجة ولا الإملاجتان ([1]) چې نه حراموى يو وار چوپل اونه دوې [دوه] پيرې چوپل او نه يو وار رابنكودل او نه دوې [دوه] پيرې رابنكودل

حل اللغة* ① تحريم: حرامول ② رضعات: جمع د رضاعت، ماشوم ته دتى شيدې وركول ③ المصة: چوپل]

[1]) من حديث عائشة رضي الله عنها أخرجه مسلم في الرضاع رقم ١٧)_

**تشریح:-** ② امام شافعی ﵀ فرمائی .چه په پنځه خله شیدې رودلوسره رضاعت ثابتیږی .په دې طریقه چې ماشوم په دې کې په هریوباندې موړشی .اوپه ظاهرروایت کې امام احمد ﵀ هم ددې قائل دې.اودامام احمد ﵀ نه دوهم روایت ددرې خله پیو څښلو منقول دی.

**دلیل الشافعی**﴿صاحب دهدایه ﵀ دامام شافعی ﵀ لپاره د نبی ﷺ یوحدیث پیش کړې دی.په حدیث کې لفظ د [المصة او الإملاحة] ذکردې.په دې دواړوکې مصة د رضیع فعل دی.او[املاحه] یعنی دماشوم شیدې رودل اوڅښل د مراضعه فعل دی.اواملاجه یعنی ماشوم ته پیوْ ورکول اوڅکول،اوس د حدیث مطلب دا شو.چه یوځل یا دوې[دوه] خله شیدې څښل یا یوځل یا دوې [دوه] خله شیدې څکول محرم نه دی .دا حدیث دامام شافعی ﵀ لپاره په دې طریقه مستدل دی.چه دا حدیث په دې دلالت کوی .چه کم رضاعت محرم نه دی.نوداحنافو ﵏ مذهب منتفی شو.اوچه د احنافو ﵏ مذهب منتفی شو.نود شوافو ﵏ مذهب په خپله ثابت شو.ځکه په دواړو مذاهبوکې څوك د فصل قائل نه دی :

**الاعتراض علی الاستدلال**﴿ په دې استدلال باندې اشکال دا دی.چه اهل ظواهروائی .چه په درې ګوټوپیوْ څښلو باندې رضاعت ثابتیږی .نودا دعوی صحیح نشوه.چه څوك د فصل قائل نه دې.که امام شافعی ﵀ دحضرت عائشې ﵂ په حدیث استدلال کول. [قالت أنزل في القرآن عشررضعات معلومات فنسخ من ذلك خمس رضعات] یعنی حضرت عائشه ﵂ فرمائی .چه په قرآن کې لس ګوټه معلوم څښل نازل شوی وو.بیا ترې پنځه منسوخ شو.نو په مطلوب باندې به دلالت زیات واضح وو.

**وَلَنَا قَوْلُهُ تَعَالَى** زمونږدلیل دحق تعالی ارشاد دی {**وَأُمَّهَاتُكُمُ اللَّاتِي أَرْضَعْنَكُمْ**} **الْآيَةَ** او ستا سو هغه میندې ( په تاسوحرامې شوی دی ) کوموچه تاسو لره تې درکړې دی **وَقَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** او دَ حضورﷺ ارشاد دی **يَحْرُمُ مِنَ الرَّضَاعِ مَا يَحْرُمُ مِنَ النَّسَبِ**()حرامیږی په رضاعت سره کومې چې حرامیږی په نسب سره په **مِنْ غَيْرِ فَصْلٍ** غیر دَ تفصیل نه

**تشریح:- دلائل الاحناف** ﵏﴿زمونږدلیل دالله تعالی ارشاد دی.﴾ **اُلَّتِيْ وَأُمَّهٰتُكُمُ**﴿ یعنی اوحرام کړې شوی دی په تاسو ستاسومیاندې چاچه تاسوته شیدې درکړی وی .اود نبی ﷺ حدیث چې [يحرم من الرضاع ما يحرم من النسب] یعنی په رضاعت هغه څه حرامیږی .څه چې په نسب حرامیږی .آیت اوحدیث دواړه مطلق دی .د قلیل اوکثیرڅه تفصیل په کې نشته.نوپه مطلق رضاع سره به حرمت ثابتیږی .

**وَلِأَنَّ الْحُرْمَةَ وَإِنْ كَانَتْ لِشُبْهَةِ الْبَعْضِيَّةِ الثَّابِتَةِ بِنُشُوءِ الْعَظْمِ وَإِنْبَاتِ اللَّحْمِ** او ځکه چې حرمت اګر چې په دې شبهه دَ بعضیت سره کوم چې دَ هډوکو په غټېدو لو اوْ دغوښې په ټو کاوه سره ثابت دې **لَكِنَّهُ أَمْرٌ مُبْطَنٌ** لیکن دا امر مخفی دې **فَتَعَلَّقَ الْحُكْمُ بِفِعْلِ الْإِرْضَاعِ** په دې وجه حکم دَ فعل دَ ارضاع سره متعلق شو

**حل اللغة:** ① **نشوز**:غټیدل② **العظم**:هډوکي ③ **انبات**:راټوکیدل④ **اللحم**: غوښه ⑤ **مبطن**:پټ ]

**تشریح:-السوال التقدیری**﴿صاحب دهدایه ﵀ چې کوم عقلی دلیل بیان کړې دی.داد یومقدرسوال ځواب دی. سوال دا دی.چه پکار دا ده.چه د پیوْ په کم مقدار رضاعت ثابت نشی .ځکه چې کم مقدارد ماشوم غوښه راټوکوی .او هډوکی غټوی . لکه چې په حدیث کې نبی ﷺ فرمائیلی دی .[الرضاع أنشر العظم وأنبت اللحم] یعنی شیدې څښلو هډوکی غټوی اوغوښه ئې راوټوکوله.(شرح هدایه)اود پیوْ په کم مقدار کې دا خبره نه ثابتیږی .

() مند حدیث ابن عباس ﵄ وقد تقدم فی أول باب النكاح )



**الجواب**﴿ځواب دا دی.چه هډوکی غټیدل اوغوښه راټوکیدل یوباطن امردې.اوحکم په ظاهرمبنی وی .په باطن نه، نوارضاع یعنی شیدې ورکول د حرمت حکم به په دې ثابتیږی .نوځکه مونږوایو.چه مطلق ارضاع سبب د حرمت دی.

**وَمَا رَوَاهُ مَرْدُودٌ بِالْكِتَابِ أَوْ مَنْسُوخٌ بِهِ**،او کوم حدیث چې شافعی ﵀ روایت کړې دې دَ غه مردود دې په کتاب الله سره یا په دې سره منسوخ دې

**تشریح:-** **الجواب عن مستدل الشافعی** ﵀ ﴿امام شافعی ﵀ چې کوم حدیث په استدلال کې پیش کړې دی.نودهغې نه ځواب دا دی.چه دا حدیث به خالی نه وی .یا به د کتاب الله نه روستو وی اویا به مخکې وی .که د کتاب الله نه روستووی .نودا به مردود وی .ځکه چې کتاب الله دحدیث په مقابله کې اقوی دې.اوعمل به په اقوی کولې شی .اوکه د کتاب الله نه مخکې وی .نودا به په کتاب الله سره منسوخ وی .دحضرت عائشې رضی الله عنهادحدیث په اړه کې امام ابن البطال ﵀ فرمائیلی دی .چه دا حدیث مضطرب دی.نود کتاب الله په مقابله کې ددې پرېښول اوکتاب الله ته رجوع کول واجب شو.

**وَيَنْبَغِي أَنْ يَكُونَ فِي مُدَّةِ الرَّضَاعِ لِمَا نُبَيِّنُ** او مناسب دی چې ټی سکل په موده دَ رضاعت کې وی لکه چې مونږ به بیان کړو

**تشریح:- ثبوت الرضاعة اذا کانت فی مدتها**﴿صاحب دهدایه ﵀ فرمائی .چه د رضاعت حکم به په هغه وخت کې ثابتیږی .چه رضاعت په موده د رضاعت کې شوې وی .ددې تفصیل به روستوراشی .

## د رضاعت په موده کې اختلاف

**ثُمَّ مُدَّةُ الرَّضَاعِ ثَلَاثُونَ شَهْرًا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ** بیا موده دَ رضاعت دیرش میاشتې ده دَ امام ابوحنیفه ﵀ په نزد **وَقَالَا سَنَتَانِ**() **وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللَّهُ** او صاحبین ﵏ وائی. چې دوې [دوه] کاله ده او دا قول دَ امام شافعی ﵀ دی **وَقَالَ زُفَرُ** ﵀ **ثَلَاثَةُ أَحْوَالٍ** او امام زفر ﵀ فرمائی چې درې کاله دی

**تشریح:- اختلاف الائمة فی مدة الرضاع**﴿په موده د رضاعت کې اختلاف دی.① دامام ابوحنیفه ﵀ په نیزموده د رضاعت دوې [دوه] نیم کاله دی .② اودصاحبینو په نیزدوې [دوه] کاله دی .دا د امام شافعی امام مالك اوامام احمد ﵀ قول دی.③ اوامام زفر ﵀ فرمائی .چه موده د رضاعت درې کاله دی

**لِأَنَّ الْحَوْلَ حَسَنٌ لِلتَّحَوُّلِ مِنْ حَالٍ إِلَى حَالٍ** ځکه چې دَ کال موده ښه ده دَ یو حال نه بل حال ته دَ منتقل کیدو دَ پاره ،**وَلَا بُدَّ مِنَ الزِّيَادَةِ عَلَى الْحَوْلَيْنِ لِمَا نُبَيِّنُ فَيُقَدَّرُ** او په دوې [دوه] کاله باند زیاتې ضروری دې په دې وجه چې مونږ به بیان کړو نو اندازه ئې وشوه په یو کال سره

**تشریح:- دلیل زفر** ﵀ ﴿دامام زفر ﵀ د دلیل لنډیز دا ده.چه د رضاعت د مودې نه روسته دومره ضروری دی.چه ماشوم د پیوْ نه پریکړې شی .اود بل څیزپه خوراك اموخته شی .اوهغه دده د بدن جزء جوړیدل پیل شی .اوهغه یوکال کیدای شی .ځکه چې په یوکال کې مختلف موسمونه د حالاتو په بدلولوکې اثرلری .نودوې [دوه] کاله د رضاعت موده شوه.اویوکال نورواړه درې کاله شول.

**وَلَهُمَا قَوْلُهُ تَعَالَى** دَ صاحبینو ﵏ دلیل قول دَ باری تعالی دې { **وَحَمْلُهُ وَفِصَالُهُ ثَلَاثُونَ شَهْرًا**} او حمل کې پاتې کیدل او تې ورکول دیرش میاشتې دی **وَمُدَّةُ الْحَمْلِ أَدْنَاهَا سِتَّةُ أَشْهُرٍ** او کمه موده دَ حمل شپږ میاشتې ده **فَبَقِيَ لِلْفِصَالِ حَوْلَانِ** نو پیو ور کاوه ته دوې [دوه] کله پاتې شو **فَبَقِيَ لِلْفِصَالِ حَوْلَانِ**. **وَقَالَ النَّبِيُّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ**

() القول الراجح هو قول الصاحبين ﵏ كذا فی فتح القدير(۳\۳۰۹) والدرلمختار(۲\٤۳۷) ومجمع الأنهر(۱\۳۷۵) والبحرالرائق (۳\۳۸۹) نقلاً عن القول الراجح (۱\۳۰۳)-

وَالسَّلَامُ{لَارَضَاعَ بَعْدَ حَوْلَيْنِ}(۱)او دَ نبی کریم ﷺ ارشاد دي چي دَ دوؤ کالو نه روسته رضاعت نشته

حل اللغة* ① حمل: په نس کي د ماشوم گرځول ② فصال: د پيو نه پريکول ③ حولان: جمع د حول ،کال]

تشریح:- دلائل الصاحبين ﷫ ① دصاحبينو ﷫ دليل د الله تعالى ارشاد چي ((وَحَمْلُهُ وَفِصٰلُهُ)) دي.په دي کي د حمل اوپيوۀ نه پريکولوموده ديرش مياشتي خودلي شوی دی .اوادنی موده د حمل شپږمياشتي ده.نود شيدي وركولوموده دوي [دوه] کاله پاتي شوه.لهذا د رضاعت مودۀ دوي [دوه] کاله شول.② دوهم دليل د نبی ﷺ حديث دي.چه د دوو کالونه روسته رضاعت نشته.اوپه يوبل روايت کي دی .[لارضاع إلا في الحولين] يعنی رضاعت نشته مگرپه دوو کالوکي .اوداابن عدی ؓ په روايت کي دی .چه [لايحرم من الرضاع إلا ما كان في الحولين] يعنی نه ثابتيږی .مگرپه هغه شيدي وركولوچه په دووكالوودننه وی .

وَلَهُ هٰذِهِ الْاٰيَةُاو دَ امام ابوحنيفه ﷫ دليل هم دا ايت دي وَوَجْهُهُ أَنَّهُ تَعَالٰى ذَكَرَ شَيْئَيْنِاو دَ دي وجه دا ده چي حق تعالى دوي [دوه] شيان (څيزونه ) ذکر کړی دی وَضَرَبَ لَهُمَا مُدَّةًاو دَ دغو دَ پاره ئې يوه موده مقرر کړي ده فَكَانَتْ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا بِكَمَالِهَا نو دا موده به په دوی کي دَ هر يو دَ پاره پوره پوره وی .كَالْأَجَلِ الْمَضْرُوبِ لِلدَّيْنَيْنِ،إِلَّا أَنَّهُ قَامَ الْمُنَقِّصُ فِي أَحَدِهِمَالکه هغه موده کومه چي دَ دوؤ قرضو دَ پاره بيان شوي وی مگر دا چي په دوی کي په يوه کي کموونکي دليل قائم وی فَبَقِيَ فِي الثَّانِي عَلٰى ظَاهِرِهِپه دي وجه بل په خپل ظاهر پاته پاتي شو

تشریح:- الدليل الاول لابی حنيفة ﷫ ﴿۞﴾داامام ابوحنيفه ﷫ دليل هغه ايت دي.کوم چي صاحبينو ﷫ بيان کړلو.وجه د استدلال دا ده.چه الله تعالى د حمل اوفصال دواړو لپاره يوه مودۀ ذکرکړي ده.نودا مودۀ به په دواړوکي د هريو لپاره وی .دا چي په دواړو به تقسيمولي شی .

الاستدلال﴿۞﴾نودغه ډول په آيت کي به هم د حمل اوفصال هريو لپاره پوره ديرش ديرش مياشتي وی .دا چي دا موده په دوو ويش کړي شی . البته دومره ده.چه په دي دواړوکي د يوي مودي (حمل) کمونکي دليل موجود دي.اوهغه دليل د حضرت عائشي رضی الله عنهاقول دي.چه [الولدلا يبقى في بطن أمه أكثر من سنتين ولوبقدر فلكة مغزل] يعنی ماشوم د مور په نس کي د دوو کالونه زيات نه پاتي کيږی .اگرکه هغه د ،ودك دغټ خاني په مقدار ولي نه وی .(فتح القدير،الكفايه) نود الله تعالى دوهم قول چي فصال دي.هغه په خپل ظاهر پاتي شو.اوهغه ديرش مياشتي دي.نوثابته شوه.چه د پيوۀ ور كاوه مودۀ دوي [دوه] نيم كاله دی .

وَلِأَنَّهُ لَابُدَّ مِنْ تَغَيُّرِ الْغِذَاءِ لِيَنْقَطِعَ الْإِنْبَاتُ بِاللَّبَنِاو ځکه چي دَ غذ ابدلول ضروری دی چي دَ پيو په ذريعه زياتيدل منقطع شی وَذٰلِكَ بِزِيَادَةِ مُدَّةٍ يَتَعَوَّدُ الصَّبِيُّ فِيهَا غَيْرَهُاو دا تغير دَ غذا به دَ داسي مودي په زياتي سره وی په کومه که چي بچي عادي شی دَ پيونه علاوه فَقُدِّرَتْ بِأَدْنٰى مُدَّةِ الْحَمْلِو دَدي زياتي اندازه په ادنی مودي دَ حمل سره او لگولي شوه لِأَنَّهَا مُغَيِّرَةٌځکه چي دا موده متغير كوونكي ده فَإِنَّ غِذَاءَ الْجَنِينِ يُغَايِرُ غِذَاءَ الرَّضِيعِ كَمَا يُغَايِرُ غِذَاءَ الْفَطِيمِ چنانچه دَ جنين غذا دَ پيو خوړونکی دَ غذا نه مغائره وی لکه چي دَ پيو خوړونکی غذا دَ تی نه دَ پريکړی بچی دَ غذا نه مغائره وی

حل اللغة* ① الغذاء: خوراك ② ينقطع: ختميږی ③ اللبن: شيدي ④ الصبی: ماشوم ⑤ الفطيم: هغه ماشوم چي پري ځکی ⑥ الجنين: هغه ماشوم چي د مور په رحم کي وی لاتراوسه پوري پيدا شوي نه وی ]

تشریح:- الدليل الثانی العقلی لابی حنيفة ﴿۞﴾ دوهم عقلی دليل دا دي.چه د پيوۀ د مودي پوره كيدو نه روسته د ماشوم لپاره دومره مودۀ ضروری ده.چه دي په کي د پيوۀ نه علاوه دبل شی په خوراك عادت شی .اود پيوۀ په

(۱) حديث ابن عباس ﷠ أخرجه الدارقطنی فی سننه (۷٤/٤) والبيهقی فی السنن الكبری (۷٦۱/۷)_



خاني هغه ده د بدن د غټولوكار پيل كړی .نوامام ابوحنيفه ﷫ دغه موده د حمل د ادنی مودي نه اخستي ده.ځکه چي دا مودۀ د خوراك بدلونكي ده.ځکه چي د رضيع خوراك د جنين د خوراك نه جلا وی .ځکه چي د جنين خوراك هغه څه وو.کوم چي ده د مور خوراك وو.بيا د پيدا كيدو نه روسته د ده خوراك خالص شيدي شو.دغه ډول د رضيع خوراك د فطيم د خوراك نه جلا وی .ځکه چي د رضيع خوراك صرف شيدي وی .اود فطيم خوراك كله شيدي اوكله نور شيان (څيزونه ).حاصل دا چي د خوراك بدلول ضروری دی .اودخوراك بدلولو لپاره كمه موده شپږ مياشتي دی .نوماشوم چي هم په نور خوراك بلدولي شی .دي لپاره زياتي شپږ مياشتي ضروری دی .

وَالْحَدِيثُ مَحْمُولٌ عَلٰى مُدَّةِ الْاِسْتِحْقَاقِ او حديث به مدت دَ استحقاق باند محمول دي وَعَلَيْهِ يُحْمَلُ النَّصُّ الْمُقَيَّدُ بِحَوْلَيْنِ فِي الْكِتَابِاو په دي محمول كولای شی هغي نص لره كوم چي په كتاب الله كي په حولين سره مقيد دي .

تشریح:- الجواب عن دلائل الصاحبين ﷫ *علامه مرغينانی ﷫ د صاحبينو ﷫ د پيش كړي حديث نه خواب وركوی . [لا رضاع بعد حولين] چي په دي حديث كي د رضاعت نفي نه ده.بلكه د اجرت نفي ده.مطلب دا كه مطلقه ښځه خپل ماشوم ته شيدي وركوی .نودا تر دوو كالوپوري د اجرت مستحقه ده.چه د ماشوم د پلار يعنی خپل سابقه خاوند نه اجرت واخلی .اوپه اتفاق سره مطلقه د دووكالونه روسته د اجرت اخستلومستحقه نه ده.اوهم په دي استحقاق اجرت باندي هغه نص محمول دي.كوم چي د حولين په قيد سره مقيد دي.يعنی((وَالْوٰلِدٰتُ يُرْضِعْنَ أَوْلَادَهُنَّ حَوْلَيْنِ كَامِلَيْنِ)) دليل دا دي.چه د دي نه روسته الله تعالى فرمائيلي دی .((فَإِنْ أَرَادَا فِصَالًا عَنْ تَرَاضٍ مِنْهُمَا)) يعنی كه دواړه غواړی . شيدي (پی) په خپل مينځ كي په رضا سره پري كولي شی .په دي آيت كي د پيوۀ پريكول په خپل مينځ كي په رضا مندئ پوري تړلي دی .نوكه د دووكالونه روسته د پيوۀ وركول حرام وو.نو په خپل مينځ كي په رضامندئ پوري به نې ولي معلق كولو.نوثابته شوه.چه په آيت كي د رضاعت د مودي بيان نه دي.بلكه په پلارباندي د بچی د شيدي وركولود استحقاق اجرت بيان دي.نود صاحبينو ﷫ دا آيت اوحديث د خپلي مدعی په تائيد كي پيش كول صحيح نه دی .

## درضاعت د مودي نه روسته د حرمت رضاعت نه ثابتيدل

وَإِذَا مَضَتْ مُدَّةُ الرَّضَاعِ لَمْ يَتَعَلَّقْ بِالرَّضَاعِ تَحْرِيمٌ او هر كله چي دَ رضاعت موده تيره شوه نو په دي سره به تحريم متعلق نه وی لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ{لَارَضَاعَ بَعْدَ الْفِصَالِ}()ځکه چي دَ نبی كريم ﷺ ارشاد دي چي دَ فصال نه روسته رضاع نشته

حل اللغة* ① الفصال: د پيو نه پري كول ② تحريم: حرامول]

تشریح:- عدم ثبوت الحرمة بعدالمدة﴿۞﴾مسئله دا ده.كه د رضاعت د مودي تيريدونه ماشوم ته شيدي وركړی . نوپه دي رضاعت سره حرمت نه ثابتيږی .دليل د نبی ﷺ حديث دي.چه د شيدي پري كاوه نه روسته رضاعت نشته.

وَلِأَنَّ الْحُرْمَةَ بِاعْتِبَارِ النُّشُوءِاو ځکه چي حرمت خو دَ نشونما په اعتبار سره دي وَذٰلِكَ فِي الْمُدَّةِاو نشونما په مدة كي وی إِذِ الْكَبِيرُ لَا يَتَرَبّٰى بِهِ ځکه چي لوي بچي په پيوپر ورش نه مومی

حل اللغة* ① النشوء: نشونما ،ودۀ كول ② المدة: مودۀ،زمانه ③ لايتربی: نه غټيږی ]

(۱) من حديث علی ﷛ أخرجه الطبرانی فی معجمه الصغير ورواه البيهقی فی السنن الكبری ( ۷ / ٥۲٤ ).

**تشريح:-الدليل العقلي**ⓐعقلي دليل دا دي.چه د رضاعت د مودې نه روسته رضاعت ځکه حرمت نه ثابتوی.چه د پيو په ذريعه د ماشوم لويدنه کيږی .اودا لوئيدنه د رضاعت په موده کي کيږی .د رضاعت د مودې نه روسته په پيو د ماشوم لوئيدنه نه کيږی .بلکه ددې لوئدنې ذريعه نور خوراکونه وی .نوهرکله چې د حرمت حکم د لوئيدلوپه وجه وو.اود رضاعت د مودې نه روسته په پيو لوئيدنه نه کيږی .نود رضاعت د مودې نه روسته به په رضاعت حرمت نه ثابتيږی .

| |
|---|
| وَلَايُعْتَبَرُالْفِطَامُ قَبْلَ الْمُدَّةِ(). او معتبر نه دی پريکول دَ تی نه مخکي دَ مودې نه إِلَّافِي رِوَايَةٍعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ مگر په يو روايت کي دَ امام ابوحنيفه رحمه الله نه إِذَااسْتَغْنَى عَنْهُ کله چې بچې د پيونه بې حاجته شی وَوَجْهُهُ انْقِطَاعُ النُّشُوءِبِتَغَيُّرِالْغِذَاءِ او دَ دې وجه دَ نشونما نه منقطع کيدل دی په غذا بدليدو سره |

**حل اللغة*** ① **الفطام**:د تی نه پرې کول ② **انقطاع**: ختميدل ③ **النشوء**: ترقی کول ،غټيدل،لوئيدل]

**تشريح:-الروايتان في ثبوت الرضاع بعدالمدة**ⓐ ① صاحب دهدايه رحمه الله فرمائی .چه د رضاعت د مودې پوره کيدو نه وړاندې وړاندې که ماشوم د پيو نه پريکړې شی .نودې ته څه اعتبار نشته.ځکه که د پيو پريکولونه روسته اود رضاعت د مودې پوره کيدونه وړاندې ددې په مينځ کي چا دې ماشوم ته شيدې ورکړلو.نوحرمت رضاعت به ثابتيږی .دا ظاهرروايت دې.② البته د حسن بن زياد رحمه الله دامام ابوحنيفه رحمه الله نه يوروايت کړې دې.که ماشوم د پيو نه پريکړې شو.اوهغه ماشوم د پيو نه بيخی لاپرواه شو.نوکه ددې نه روسته ورته چا په موده د رضاعت کي شيدې هم ورکړلو.رضاعت پرې نه ثابتيږی .

**دليل الرواية الثانية**ⓐددې روايت دليل دا دې.چه د خوراك په بدليدو سره ددې ماشوم په پيو لوئيدل ختم شو.بلکه په نورو څيزونودده لوئيدل پيل شو.اود رضاعت د ثبوت لپاره د پيو په ذريعه د ماشوم لوئيدل سبب وو.نوهرکله چې سبب ختم شو.نوحکم به هم نه ثابتيږی .

| |
|---|
| وَهَلْ يُبَاحُ الْإِرْضَاعُ بَعْدَالْمُدَّةِ؟او آيا ئې سکول مباح دی روسته دَ مودې نه فَقِيلَ لَايُبَاحُ وئيلی شوی دی چې مباح نه دی لِأَنَّ إِبَاحَتَهُ ضَرُورِيَّةٌلِكَوْنِهِ جُزْءَالْآدَمِيِّ.ځکه چې دَ دې اباحت ضرورة دې په دې وجه ئې دَ بنده جزء دې |

**تشريح:-عدم اباحة الرضاعة بعدالمدة**ⓐصاحب دهدايه رحمه الله دسوال په طرزفرمائی .چه د رضاعت د مودې نه روسته شيدې ورکول مباح دی که مباح نه دی .په دې اړه کي وئيلی شوی دی .چه مباح نه دی .ځکه چې په موده د رضاعت کي شيدې ورکول د اړتيا په وجه جائز شوی دی .اودا قاعده ده.چه [الثابت بالضروة يتقدر بقدر الضرورة]چونکه د مودې نه روسته اړتيا ختم شو.نواباحت هم ختم شو.اود پيو اباحت ځکه د اړتيا په وجه دې.چه شيدې د بنيادم جزء دې.اود بنيادم په جزء باندې فائده اخستل حرام دی .نوځکه بغيرضرورته د بنيادم شيدې څښل مباح نه دی .

### په رضاعت سره حرمت نسب

| |
|---|
| قَالَ وَيَحْرُمُ مِنَ الرَّضَاعِ مَايَحْرُمُ مِنَ النَّسَبِ لِلْحَدِيثِ الَّذِي رَوَيْنَا او حراميږی په رضاعت سره هغه ټولې رشتې کومې چې حراميږی په نسب سره دَ دې حديث په وجه کوم چې موږ روايت کړو إِلَّاأُمَّ أُخْتِهِ مِنَ الرَّضَاعِ فَإِنَّهُ يَجُوزُأَنْ يَتَزَوَّجَهَا مگر موردَ رضاعی خور چې دَ دې سره نکاح جائز دې |

**تشريح:-** د رضاعت درې صورتونه دی .اولنې صورت[إلا أم أخته من الرضاع] سره بيانوی . خودا عبارت درې واړه صورتونوته ګډ دې.① ځکه که د رضاعت تعلق به د اخت او ام دواړو سره وی په دې صورت کي به

(1) القول الراجح هو ظاهر الرواية كذا في فتح القدير(٣١٠١٣) والعناية (٣٠٩١٣) والدرالمختار(٤٣٨١٢) والخانية (١٩١١١) ومجمع [...]ر(٣٧٦١١)نقلاً عن القول الراجح (٣٠٤١١)-



مطلب دا وی .چه د رضاعی خور د رضاعی مورسره نکاح جائزده.ددې صورت به دا وی .چه خالد او زينب دواړو د هندې شيدې اورودل.بيا زينت د ام سلمې شيدې اورول.نواوس د خالد نکاح د ام سلمې سره کيږی .ددې باوجود. چې ام سلمه د خالد د رضاعی خور زينت رضاعی مور ده② اوکه صرف داخت سره وی د دې صورت مطلب به دا وی .چه د رضاعی خور د نسبي مورسره نکاح جائزده.ددې صورت به دا وی .چه زيد اود ساجدې د يوې اجنبی ښځې شيدې اورول. خو زيد د ساجدې د خپلې سکه مور شيدې نه دې رودلې.نواوس په دې صورت کي د زيد دخپلې رضاعی خور ساجدې د نسبي مور سره نکاح کيږی .③ اوکه صرف د ام سره وی . په دې صورت کي بـه مطلب دا وی .چه د نسبي خور د رضاعی مورسره نکاح جائزده.ددې صورت به دا وی .چه د زيد نسبي خورده.اود هغې رضاعی مور ده.خو زيد د خپلې نسبي خور د رضاعی مور شيدې نه دی رودلی .په دې صورت کي د زيدخپلې نسبي خور د رضاعی مورسره نکاح کيږی .

| |
|---|
| وَلَايَجُوزُأَنْ يَتَزَوَّجَ أُمَّ أُخْتِهِ مِنَ النَّسَبِ حال دا دې چې دَ خپلې نسبي خور دَ مورسره نکاح جائز نه دې لِأَنَّهَاتَكُونُ أُمَّهُ أَوْمَوْطُوءَةَ أَبِيهِ، بِخِلَافِ الرَّضَاعِ ځکه چې هغه به دَ دهٔ موروی يادَ دهٔ دَ پلار موطوءَ وی په خلاف دَ رضاعت نه |

**تشريح:- حرمة النكاح في الصور المذكورة في النسب**ⓐالبته د هلك د نسبي خورد نسبي مورسره نکاح جائزنه ده.ځکه چې دنسبي خور نسبي مورخو به يا دده هم سکه مور وی .اويا به دده ميرنۍ مور وی .يعنی د دهٔ د پلار موطوءه به وی .اوکه د دواړو پلار يواو مندې جلا وی .نوپه دې دواړو صورتونوکي د نسبي مورسره نکاح ناجائزده.البته د رضاع په صورت کي نکاح جائزده.اوپه دې کي څه قباحت نشته.

### د مسئلې دوهم صورت

| |
|---|
| وَيَجُوزُأَنْ يَتَزَوَّجَ أُخْتَ ابْنِهِ مِنَ الرَّضَاعِ او جائز دی دَ خپل رضاعی ځوئی دَ خور سره نکاح کول |

**تشريح:- استثناء الصورة الثانية**ⓐ دوهم صورت د کوم چې د ذکرشوې قاعدې نه استثناء شوې ده.صاحب دهدايه رحمه الله ددې دوهم صورت بيانوی .خوپه دې دوهم صورت کي هم درې احتمالات دی .① د رضاعی ځوئی رضاعی خور② د رضاعی ځوئی نسبي خور③ د نسبي ځوئی رضاعی خور.په دې درې واړه احتمالاتوکي نکاح کول جائزده.په اولنی صورت کي چې کوم درې صورتونه بيان شوی دی .چه په هغې قياس اوشی .نوپه دې دوهم صورت کي هم هغه درې صورتونه اواحتمالات راويستل څه ګران نه دی .

| |
|---|
| وَلَايَجُوزُذَلِكَ مِنَ النَّسَبِ او دا جائز نه دی په نسب سره لِأَنَّهُ لَمَّاوَطِئَ أُمَّهَا ځکه چې هر کله دَدې دَ مور سره ئې وطی اوکړه حُرِّمَتْ عَلَيْهِ نو مور په دهٔ حرامه شوه وَلَمْ يُوجَدْهَذَاالْمَعْنَى فِي الرَّضَاعِ او نهٔ شی موندې دا معنی په رضاعت کي. |

**تشريح:- عدم جوازالنكاح في الصورة المذكورة من النسب**ⓐخوکه په دې دواړوکي نسبي رشته وی .يعنی د نسبي ځوئی د نسبي خورسره نکاح کول جائزنه ده.وجه دا ده.که دده د نسبي ځوئی خورده د نطفې نه پيدا وی .نودا دده لورشوه.اود لور سره نکاح جائزنه ده.اوکه دده د نطفې نه پيدا نه وی .بلکه دځوئی صرف د مور د اړخه خور وی .نودا پرکتمۍ شوه.اود پرکتمۍ په مورکي دخول اوکړې شی .نونکاح ورسره حراميږی .هم دا صورت علامه مرغينانی رحمه الله بيان کړې دې.چه کله که دَ ځوئی د خور د مورسره وطی اوکړی .نوهغه خور په دې پلار باندې حرامه شوه.بهرحال چې څه هم وی .خوپه دې دواړو صورتونوکي (که لور وی اوکه پرکتمۍ وی ) ددې نسبي ځوئی دخورسره نکاح جائزنه ده.اوکه د رضاعت په باب کي په دې دواړو صورتونوکي يوصورت هم موجود شو.نونکاح جائزده.

### د رضاعی پلار د ښځې اود رضاعی ځوی دښځې سره د نکاح حرمت

وَامْرَأَةُ أَبِيهِ أَوِ امْرَأَةُ ابْنِهِ مِنَ الرَّضَاعِ لَا يَجُوزُ أَنْ يَتَزَوَّجَهَا او د خپل رضاعی پلارد ښځې اودر ضاعی خوئی دښځې سره نكاح جائز نه ده. كَمَا لَا يَجُوزُ ذَلِكَ مِنَ النَّسَبِ لِمَا رَوَيْنَا لكه ځنګه چې د نسب نه دا نكاح جائزنه ده.د امله دهغه حديث نه كوم چې موږ روايت كړي دي.

**تشريح:- حرمة النكاح مع امراة ابيه الرضاعی وابن الرضاعی۞** د [وامرأة أبيه] صورت دا دی.چه د شيدي وركونكي ښځي خاوند د بلې ښځې هندې سره نكاح اوكړله.اوبيا ئي هندې ته طلاق وركړلو.نو د دې مرضعې رضاعی خوئي د هندې سره نكاح نشی كولې.ځكه چې هنده دده د رضاعی پلار ښځه ده.دغه ډول د رضاعی خوئي د ښځې سره نكاح حرامه ده.دليل د نبی ﷺ حديث دی.چه [يحرم من الرضاع ما يحرم من النسب]

وَذِكْرُ الْأَصْلَابِ فِي النَّصِّ لِإِسْقَاطِ اعْتِبَارِ التَّبَنِّي عَلَى مَا بَيَّنَّاهُ اوذكرد اصلاب په نص كې د متبنی د اعتبارساقط كاوه لپاره دی.په هغه تفصيل سره كوم چې موږ وړاندې بيان كړې دي.

**حل اللغة*** ① **اصلاب:** جمع د صلب،شا ② **التبنی:** څوك په خوئې توب سره نيول]

**تشريح:-السوال التقديری۞** په[وذكرالأصلاب] سره صاحب دهدايه رحمه الله د يوسوال ځواب وركوی.سوال دا دی.چه په قرآن پاك كې د محرماتو په بيان كښې دی.چه ((وَحَلَائِلُ أَبْنَائِكُمُ)) په دې كې د اصلاب ذكر دی.ددې نه معلوميږی.چه د صلبی خوئی دښځې سره نكاح ناجائزده.اود رضاعی خوئې د ښځې سره جائزده.حالانكه حكم ددې په خلاف دی.

**الجواب۞** په دې آيت كې د [أصلاب] ذكرد متبنی د ښځې ويستلو لپاره دی.د رضاعی خوئی د ښځې ويستلو لپاره نه دی.حاصل دا چې د متبنی د ښځې سره نكاح كول جائزده.اود صلبی خوئی د ښځې نكاح ناجائزده.ځكه چې دا په كتاب الله سره ثابت ده.اودر ضاعی خوئی د ښځې سره د نكاح حرمت په حديث مشهوره سره ثابت دی.چه [يحرم من الرضاع ما يحرم من النسب].

## د مرضعې د لوردهغې په خاوند باندې حرمت

وَلَبَنُ الْفَحْلِ يَتَعَلَّقُ بِهِ التَّحْرِيمُ او د سړی د پيو سره متعلق كيږی حرمت وَهُوَ أَنْ تُرْضِعَ الْمَرْأَةُ صَبِيَّةً او هغه دا ده چې ښځه چا بچې ته پۍ وركړی فَتَحْرُمُ هَذِهِ الصَّبِيَّةُ عَلَى زَوْجِهَا وَعَلَى آبَائِهِ وَأَبْنَائِهِ نو حراميږی د ابچې د مرضعې په خاوند او د دې په پلار انو باند او په خامنو باند وَيَصِيرُ الزَّوْجُ الَّذِي نَزَلَ لَهَا مِنْهُ اللَّبَنُ أَبًا لِلْمُرْضَعَةِ او شی به د غه خاوند دكوم نه چې دغه پۍ راغلی دی پلار د پاره دتی خوړونكی

**حل اللغة*** ① **الفحل:** خوان ]

**تشريح:- المذهبان بالحرمة بسبب لبن الفحل۞** په لبن الفحل كې اضافت د څيزخپل سبب ته دی.ځكه چې د پيو سبب سړی دی.اوپه لبن فحل سره د تحريم صورت دا دی.چه مرضعې يوې ماشومې ته شيدې وركړلو.نود دغه مرضعې په خاوند باندې دا ماشومه حرامه شوه.اودهغې ددې خاوند په پلار نيكه،اوپه خوئی اونمسی باندې دا ماشومه حرامه شوه.اود مرضعې دا خاوند چې دهغه په سبب ددې مرضعې دا شيدې راغلی دی.د دغه ماشومې رضاعی پلار شو.هم دا د امام شافعی رحمه الله دعاموملګروقول دی.اوامام مالك اوامام احمد رحمه الله هم ددې قائلين دی

وَفِي أَحَدِ قَوْلَيِ الشَّافِعِيِّ رحمه الله لَبَنُ الْفَحْلِ لَا يُحَرِّمُ او د شافعی رحمه الله په دوؤ قولونو كې په يو قول كې د سړی پۍ محرم نه دی لِأَنَّ الْحُرْمَةَ لِشُبْهَةِ الْبَعْضِيَّةِ ځكه چې حرمت د شبهې د جزئيت په وجه سره وی وَاللَّبَنُ بَعْضُهَا لَا بَعْضُهُ او پۍ د ښځې جزدی نه چې د سړی

**تشريح:-** د امام شافعی رحمه الله يو قول دا دی.چه لبن فحل محرم نه دی.دا قول د امام شافعی رحمه الله نمسی عبدالرحمن نقل كړی دی.



دليل دا دی.چه حرمت رضاعت په دې وجه ثابتيږی.چه په دې كې د مرضعې د بدن جزء د ماشوم د بدن جزء ګرځی.ځكه چې شيدې د مرضعې دبدن جزء دی.اوپه پيوؤ باندې د ماشوم هډوكی اوغوښه راټوكيږی.نوپه ذكرشوی صورت كې حرمت ځكه نه ثابتيږی.چه شيدې د ښځې د بدن جزء دی.د خاوند د بدن جزء نه دی.نودحرمت رضاعت تعلق به هم د ښځې سره وی.سړی سره به نه وی.

**الخواب۞** زمونږد اړخه ځواب دا دی.چه غالباً دحضرت امام شافعی رحمه الله نه د عدم حرمت رضاعت قول د هغه پيوؤ كې نقل شوی وی.كوم چې د هغه د سينې نه راوځی.اوپه اتفاق سره په هغې حرمت رضاعت نه ثابتيږی.پاته پاتې شوهغه شيدې كوم چې د سړی د وطی په وجه د ښځې په سينوكې پيدا شوی وی.هغه د احنافو،حنابلؤ اومالكيانو ټولو په نيز حرمت رضاعت ثابتوی.اودامام شافعی رحمه الله دعامو ملګرو هم دا قول دی.صرف د امام شافعی رحمه الله دنمسی د قول په وجه به د ټولې دنيا قول نشی پريخودلې.

وَلَنَا مَا رَوَيْنَا او زمونږ دليل هغه حديث دی كوم چې موږ روايت كړو وَالْحُرْمَةُ بِالنَّسَبِ مِنَ الْجَانِبَيْنِ او حرمت په ذريعه د نسب د جانبينو نه وی فَكَذَا بِالرَّضَاعِ نو داسې به وی په رضاعت سره وَقَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ لِعَائِشَةَ رضی الله عنها او د حضور ﷺ ارشاد دی حضرت عائشې رضی الله عنها ته لِيَلِجْ عَلَيْكِ أَفْلَحُ چې افلح د ستا خواته راځی فَإِنَّهُ عَمُّكِ مِنَ الرَّضَاعَةِ[1] ځكه چې دغه ستا اكا دی رضاعی

**تشريح:-** زمونږ دليل دا حديث دی.① چه [يحرم من الرضاع ما يحرم من النسب] اود نسب په وجه حرمت په سړی اوښځې دواړو د اړخه وی.نودغه ډول به د رضاعت په وجه هم د دواړوطرفونو نه وی. ② دوهم دليل د حضرت عائشې رضی الله عنها حديث دی. حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی.چه افلح بن ابی قيس راغلو.نوافلح اووئيل.چه ته زما نه پرده كوې.حالانكه زه ستا اكا يم.حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی.ما ورته اووئيل.ځنګه؟ نوهغه اووئيل.چه زما د رور ښځې تاته شيدې دركړي دی.حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی.ما ورته اووئيل.ماته ښځې شيدې راكړې دی.سړی نه دی راكړې.په دې كې رسول الله ﷺ تشريف راوړلو.نوما ورته ټوله واقعه بيان كړه.نبی ﷺ اوفرمائيل.افلح ستا اكا دی.دې به بغير پردې تاته تشريف راوړی.په دې حديث كې نبی ﷺ افلح ته د حضرت عائشې رضی الله عنها رضاعی اكا وئيلې دی.او رضاعی اكا ددې نه بغيرنشی كيدې.چه د مرضعې خاوند د حضرت عائشې رضی الله عنها رضاعی پلار وی.نوهركله چې رضاعی اكا سره تحريم ثابتيږی.نود رضاعی پلار سره خوبه خامخا ثابتيږی.

**اعراب ليلج۞** [تيلج] امرغائب ولوج په معنی د دخول دی.په اصل كې [ليولج] واوددې امله ساقط شوی دی.چه د ياء اوكسرې په مينځ كې واقع شوې وو.[افلح] په رفع سره د [ليلج] فاعل دی.

وَلِأَنَّهُ سَبَبٌ لِنُزُولِ اللَّبَنِ مِنْهَا او ځكه چې خاوند د مرضعې نه د پيوراكوزيدلو سبب دی فَيُضَافُ إِلَيْهِ فِي مَوْضِعِ الْحُرْمَةِ احْتِيَاطًا نو په موضع د حرمت كې به احتياطاً د ده طرف ته ئې نسبت كولای شی.

**تشريح:-** علامه مرغينانی دريم عقلی دليل دا ذكر كوی چې خاوند د مرضعې نه د پيوراكوزيدلو سبب دی نو په موضع د حرمت كې به احتياطاً د ده طرف ته ئې نسبت كولای شی نو حرمت به پرې ثابتيږی.

## د رضاعی رور د خورسره دنكاح جواز

وَيَجُوزُ أَنْ يَتَزَوَّجَ الرَّجُلُ بِأُخْتِ أَخِيهِ مِنَ الرَّضَاعِ او جائز دی چې نكاح اوكړی سړی د خپل رضاعی رور د خور سره

[1]) أخرجه البخاری فی النكاح باب ١١٧ ومسلم فی الرضاع رقم ٧ وأبوداود فی النكاح باب ٧ والترمذی فی الرضاع باب ٢ والنسائی فی النكاح باب ٥٢ وابن ماجه فی النكاح باب ٣٨ والدارمی فی النكاح باب ٤٨ ومالك فی الرضاع رقم ٢ وأحمد فی المسند ( ٦ / ١٩٤ )

لِأَنَّهُ يَجُوزُ أَنْ يَتَزَوَّجَ بِأُخْتِ أَخِيهِ مِنَ النَّسَبِ ځکه چې دَ خپل نسبی رور دَ خور سره نکاح جائز دي

تشریح:- مسئله دا ده.چه خالد د ماجد د مور شیدې (پئ) اورودل.نوماجد د خالد د نسبی خورسره نکاح کولې شی . حالانکه دا انجلی د ماجد د رضاعی رور خالد نسبی خورده.دلیل دا دې.چه د نسبی رور د نسبی خورسره نکاح جائزده.

وَذَلِكَ مِثْلُ الْأَخِ مِنَ الْأَبِ إِذَا كَانَتْ لَهُ أُخْتٌ مِنْ أُمِّهِ او دا مثلاً پلار شریك رور هر کله چې دَ ده مور شریکه خور وی جَازَ لِأَخِيهِ مِنْ أَبِيهِ أَنْ يَتَزَوَّجَهَا نو دَ پلار شریك رور دَ پاره دَ دې سره نکاح کول جائز دی

تشریح:- ددې صورت به دا وی .چه د شاهد دوې [دوه] (خالد اوبکر)خامن دی .اود دوارو میندې جلا جلا دی.(د خالد مور کلثوم وی اود بکر مور عائشه وی ) نودا دواړه علاتی (میرنی ) رونړه (چه پلار ئې یو وی ) شول.اوس شاهد په دغه دووښځوکي یوې (کلثوم) ته طلاق ورکړلو.هغې دعدت تیرولونه روسته د بل خاوند سره نکاح اوکړله.اودهغې نه ئې لور(زینب) پیدا شوه.نودغه انجلی (زینب) دشاهد په دوو خامنو کې د یو (خالد) خورده.اودبل (بکر)په حق کي اجنبی ده.نود کوم (بکر)په حق کي چې اجنبی ده.دهغه سره ددې انجلی (زینب) نکاح صحیح کیږی .حالانکه د دغه انجلی خاوند (خالد) ددې (زینب) د نسبی رور(بکر) رور دې.(ځکه چې د دواړو پلاریو دې)

## په یوه سینه د جمع کیدو په وجه ثبوت د حرمت

وَكُلُّ صَبِيَّيْنِ اجْتَمَعَا عَلَى ثَدْيٍ وَاحِدَةٍ او هر هغه دوې [دوه] بچي چې دَ یوې ښځې په تی جمع شوی وی په دغو کي لَمْ يَجُزْ لِأَحَدِهِمَا أَنْ يَتَزَوَّجَ بِالْأُخْرَى دَ یو دَ پاره جائز نه دی چې دَ بل سره نکاح او کړی هَذَا هُوَ الْأَصْلُ لِأَنَّ أُمَّهُمَا وَاحِدَةٌ فَهُمَا أَخٌ وَأُخْتٌ دا اصل دې ځکه چې دَ دواړو مور یوه ده نو دغه رور خور شو.

حل اللغة° ① ثدي: سینه،تې ]

تشریح:- دواړوماشومانویعنی هلك اوانجلی د یوې ښځې شیدې اورودلو ،په یوځل یا وړاندې روسته،نودا دواړه به رضاعی ورور اوخور وی .اوددوی به په خپل مینځ کي نکاح صحیح نه وی .لکه څنګه چې نسبی ورور خور په خپل مینځ کي نکاح نشی کولې.په ،باب الحرمة، کي هم دا ضابطه ده.

## د مرضعه لپاره د مرضعه د بچوسره د نکاح حرمت

وَلَا يَتَزَوَّجُ الْمُرْضَعَةَ أَحَدٌ مِنْ وَلَدِ الَّتِي أَرْضَعَتْ او نکاح دِ نه کوی هغه بچې سره کوم لره چې ئې ور کړی شوی وی لِأَنَّهُ أَخُوهَا ځکه چې دا ئې وروردي وَلَا وَلَدُ وَلَدِهَا ونه د د ورورد بچو سره لِأَنَّهُ وَلَدُ أَخِيهَا ځکه چې دا خونې وراره دې. وَلَا يَتَزَوَّجُ الصَّبِيُّ الْمُرْضَعُ أُخْتَ زَوْجِ الْمُرْضِعَةِ ونکاح به نه کوی هغه ماشوم چې شیدې ورته ورکړې شوې وی .د رضاعی مورد خاوند خور سره لِأَنَّهَا عَمَّتُهُ مِنَ الرَّضَاعَةِ ځکه چې دا ئې رضاعی ترور شوه(درضاعی پلار د اړخه )

حل اللغة° ① الصبي:ماشوم ② عمة: د پلار خور]

تشریح:- الاعرابان في العبارة⊛په المرضعة کښي دترکیب په اعتبارسره دوې [دوه] احتمالات دی .① اول دا چې مرضعه بفتح الضاد اسم مفعول وی .اود [یتزوج] د فاعل په وجه مرفوع وی .او[أحداً] منصوب وی . د مفعولیت په بناء.په دي صورت کي به ژباړه دا وی .په دې صورت کي مطلب دا دې.چه صبیه ماشومه به د شیدې ورکونکې مرضعې په بچوکي چاسره نکاح نه کوی .② دوهم احتمال دا دې.چه [مرضعة] په صیغه اسم مفعول منصوب وی .او[أحد] د فاعلیت په بناء مرفوع وی .په دې صورت کي به ژباړه دا وی .چه د



شیدې ورکونکې دانړې په بچوکي به د چا د مرضعه ماشوم سره نکاح نه کیږی .حاصل د دواړو یودې.د مسئلې صورت ښکاره دې.د وضاحت محتاج نه دې.

## په اوبوکښې ګډ شوو پیو د حرمت رضاعت حکم

وَإِذَا اخْتَلَطَ اللَّبَنُ بِالْمَاءِ او هرکله چې خلط شو پئ دَ اوبو سره وَاللَّبَنُ هُوَ الْغَالِبُ او پئ غالب وو تَعَلَّقَ بِهِ التَّحْرِيمُ نو په دې سره تحریم متعلق وی وَإِنْ غَلَبَ الْمَاءُ او که اوبه غالبې وې لَمْ يَتَعَلَّقْ بِهِ التَّحْرِيمُ نو په دې پورې به تحریم متعلق نه وی

حل اللغة° ① اللبن: شیدې ② الماء: اوبه ③ التحریم:حراموالې]

تشریح:- ثبوت الرضاعة باللبن الغالب المخلوط مع الماء⊛مسئله دا ده.که د مرضعې شیدې د اوبوسره ګډ شی . او یا دهغه شیدې یوماشوم اوڅکی .نوپه دې کي دوې [دوه] صورتونه دی .یودا چې شیدې غالب وی .اواوبه مغلوبې.په دې صورت کي حرمت رضاعت ثابتیږی .

المذهبان في ثبوت الرضاعة باللبن المغلوب⊛اوبل صورت دا دې.چه شیدې مغلوب اواوبه زیاتي وی .په دې صورت کي زمونږ د احنافو ﷭ په نیزحرمت رضاعت نه ثابتیږی

خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ په خلاف دَ امام شافعي ﷫ نه هُوَ يَقُولُ: إِنَّهُ مَوْجُودٌ فِيهِ حَقِيقَةً هغه فرمائی چې پئ پکي حقیقةً موجود دی

تشریح:- ②اوامام شافعي ﷫ فرمائی .که په اوبوکي ګډ شوی شیدې پنځوګوټوته رسی .نوحرمت ثابتیږی .اګرکه اوبه زیاتي او شیدې کم وی .

دلیل الشافعي ﷫⊛دامام شافعي ﷫ دلیل دا دې.چه دا په یقین سره معلومه ده.چه حقیقةً اوحساً په اوبوکي شیدې ګډ دی .نودا یومحسوس څیزشو.اود محسوس نه انکار نشی کولې.اوچه شیدې اوخښلې شی .نوپه هغې باندې رضاعت ثابتیږی .نوپه دې صورت کي هم رضاعت ثابتیږی .زیات نه زیات په امام شافعي ﷫ باندې دا اعتراض کیدای شی .چه شیدې مغلوب دی .اومغلوب په حکم د معدوم کښي وی .نو پکارده چې په دې رضاعت ثابت نشی .خود هغوی د اړخه دا ځواب کیدای شی .چه دا صورت د حرمت اوعدم په مینځ کي دائردی .اوچه کله په یوه مسئله کي دحرمت اوعدم دواړو احتمال وی .نود احتیاط په بنا (بنیاد) به ترجیح محرم ته ورکولې شی .

وَنَحْنُ نَقُولُ الْمَغْلُوبُ غَيْرُ مَوْجُودٍ حُكْمًا حَتَّى لَا يَظْهَرَ فِي مُقَابَلَةِ الْغَالِبِ كَمَا فِي الْيَمِينِ او موږ وایو چې مغلوب حکما غیر موجود دې تر دې چې دَ غالب په مقابله کي ظاهر نه وی لکه په یمین کي

تشریح:- الدلیل في ضمن الجواب⊛زمونږ د اړخه دامام شافعي ﷫ د پیش کړی دلیل ځواب دا دې.چه شیدې مغلوب دی .نودا د حکم په اعتبارسره غیرموجود شو.اود مغلوب حکم د غالب په مقابله کي نه ښکاره کیږی .مثلاً یوکس قسم اوخوړلو.چه شیدې به نه څکی .اوبیا ئې په اوبوکي ګډ شوې شیدې اوڅکل.اوهغه شیدې مغلوب وو.نودې نه حانثیږی .لکه چې احنافو ﷭ دا مسئله په مسئله د یمین باندې قیاس کړې ده.

أضعف الدلیل⊛خود احنافو ﷭ دا دلیل مغلوب دې.ځکه چې دقسم بناء په عرف باندې وی .اوپه عرف کي مغلوب پیو ته شیدې نشی وئیلې.نوددې امله نه نه حانثیږی .اوحرمت د رضاعت موقوف دې.په وجود د پیو اوهغه موجود دی .نوحرمت به هم ثابت وی . لنډیز دا چې دا قیاس قیاس مع الفارق دې.

الدلیل القوی⊛ددې نه قوی دلیل دا دې.چه د رضاعت په باب کي حرمت ثابتیږی .په دې وجه چې شیدې دماشوم لپاره غذا جوړیږی .اود دغه پیو په ذریعه د هډوکواوغوښې پالنه کیږی .اوچه شیدې مغلوب وی .نودا ذریعه د هډوکی اوغوښې د پالنه اونشونما نه ګرځی .اوچه ذریعه د نشونما اوپالنې نشوه.نوحرمت رضاعت هم ثابت نشو.(عینی شرح عنایه)

## د خوراک سره په ګډ شوو پیو باندې د رضاعت حکم

وإن اختلط بالطعام که ملاؤ شو پئ د خوراک سره لم يتعلق به التحريم وإن كان اللبن غالبا عند أبي حنيفة رحمه الله(۱) نو په دې پورې به تحريم متعلق نه وي اګر که وي پئ غالب په نزد د امام صاحب،

تشريح:- المذهبان في ثبوت الرضاعة باللبن المخلوط مع الطعام ❁ صورت د مسئلې دا دې. که شیدې د خوراک سره یوځائې شو. اوهغه شیدې په اورباندې پشیدلې نه وي. ① نو دامام ابوحنیفه رحمه الله په نیز پرې حرمت نه ثابتیږي. که شیدې غالب وي اوکه مغلوب. د مغلوبیت په صورت کې خوخبره ښکاره ده. اوکه غالب وي نوچونکه دا د خوراک د څیز سره ګډشوی او پخ شوی دی. نو دا د خوراک د څیز تابع شو. نو دې پیو ته اوس مطلق شیدې نشي وئیلې.

وقالا: إذا كان اللبن غالبا يتعلق به التحريم او صاحبين رحمهما الله فرمائي که پئ غالب وو نو تحريم به ور پورې متعلق وي قال ﷺ: قولهما فيما إذا لم تمسه النار، حتى لو طبخ بها صاحب دهدايه فرمائي چې د صاحبينو رحمهما الله قول په دې صورت کې دې چې کله دې لره اُور مسه نه کړی تر دې چې که په اور پوخ شو لا يتعلق به التحريم في قولهم جميعا نو په دې پورې به تحريم متعلق نه وي د ټولو په قول باندې

حل اللغة: ① النار: اور ② طبخ: پخول ]

تشريح:- صاحبين رحمهما الله فرمائي. که شیدې غالب وي. نو حرمت رضاعت پرې ثابتیږي. ګنې نه ثابتیږي. صاحب دهدایه فرمائي چې د صاحبینو رحمهما الله قول په دې صورت کې دې چې کله دې لره اُور مسه نه کړی تر دې چې که په اور پوخ شو نو په دې پورې به تحریم متعلق نه وي د ټولو په قول باندې

لهما أن العبرة للغالب كما في الماء صاحبینو رحمهما الله دلیل دا دې چې اعتبار غالب لره وي لکه چې په اوبو کې إذا لم يغيره شيء عن حاله هر کله چې پیولره څه شی د خپل حال نه متغیر کړی نه وي

تشريح:- په اصل مسئله کې د صاحبینو رحمهما الله دلیل دا دې. چه اعتبار غالب لره دې. لکه شیدې چې د اوبو سره ګډشي. نو غالب لره اعتبار وي. خو په دې شرط چې دغه بل شی شیدې (پئ) د خپل حالت نه بدل کړې نه وي

ولأبي حنيفة رحمه الله أن الطعام أصل واللبن تابع له في حق المقصود او د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دا دې چې طعام اصل دې او پئ تابع د دې دی په حق د مقصود کې فصار كالمغلوب نو د غه په مثل د مغلوب شو

تشريح:- دامام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دا دې. چه مقصود یعنی غذا حاصلولو کې خوراک اصل دې او شیدې تابع دی. نو په مقصود یعنی عذا کې شیدې مغلوب شو. اګرچه په حقیقت کې غالب دی. نو ځکه ورپورې تحریم نه متعلق کیږي.

ولا معتبر بتقاطر اللبن من الطعام عنده هو الصحيح او د طعام نه د پیو د قطرو څڅید و څه اعتبار نشته د امام ابوحنیفه رحمه الله په نزد دا صحیح ده لأن التغذي بالطعام إذ هو الأصل ځکه چې تغذی په طعام سره کیږي ځکه چې طعام اصل دې

تشريح:- الروايتان في ثبوت الحرمة في صورة التقاطر من الطعام ❁ صاحب دهدایه رحمه الله فرمائي. که شیدې د خوراک نه څڅیږي. نو آیا په دې باندې حرمت ثابتیږي که نه؟ ① نو دامام ابوحنیفه رحمه الله په نیز صحیح دا ده. چه حرمت نه ثابتیږي. او د پیو څاڅکوته څه اعتبار نشته. دلیل دا دې. چه په دې صورت کې هم په غذا حاصلولو کې د خوراک شی اصل دې. پئ په څیزکې ګډ شوي وي. او د خوراک په وخت کې د ګوله (نمړئ) نه شیدې پریوځي. تابع دی.

(۱) القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في فتح القدير (۳\۳۱۶) والعناية (۳\۳۱۶) والخانية (۱\۱۹۱) وردالمحتار (۲\٤٤٤) نقلا عن القول الراجح (۱\۳۰۵)-



② او دامام ابوحنیفه رحمه الله غیر اصح قول دا دې. چه په دې صورت کې حرمت ثابتږي. ځکه که د پیو یو څاڅکي د ماشوم په حلق کې ورغله. نو حرمت ثابتیږي. خو صحیح قول دا دې. چه حرمت نه ثابتیږي.

## په دوائي کې ګډشوو پیو حرمت رضاعت

وإن اختلط بالدواء واللبن غالب، او که ملاؤ شو پئ د دوايئ سره او پئ غالب وو تعلق به التحريم نو متلق به وي ور سره تحريم لأن اللبن يبقى مقصودا فيه ځکه چې په دې کې مقصود پئ شو إذ الدواء لتقويته على الوصول ځکه چې د دوائی د پیو په رسولو کې د تقویت د پاره ده

حل اللغة: ① اختلط: ګډ شو ② الدواء: دوائی ③ تقويت: مضبوطول ]

تشريح:- الصورتان في ثبوت الحرمة باللبن المخلوط مع الدواء ❁ ① که د دوائې سره شیدې ګډ کړې شي. نو که شیدې غالب وو. په دې صورت کې پرې حرمت رضاعت ثابتیږي. دلیل دا دې. چه په غذا حاصلولو کې شیدې مقصود دی. دوائی خو صرف د شیدې رسولو تقویت پیدا کوی. ② او که شیدې مغلوب او دوائی غالبه وي. نو حرمت رضاعت پرې نه ثابتیږي.

## د وزه د پیو سره د ښځې د پیو ګډیدل

وإذا اختلط اللبن بلبن الشاة وهو الغالب. او هر کله چې ملاؤشو پئ د بیزې د پیو سره او دا غالب وو تعلق به التحريم نو تحريم به ور پورې متعلق وي وإن غلب لبن الشاة او که غالب وو شیدې د وزه لم يتعلق به التحريم اعتبارا للغالب كما في الماء نو تحریم به ورپورې متعلق نه وي. د امله د اعتبار د غالب نه. لکه په اُوبو کې.

حل اللغة: ① الشاة: وزه ]

تشريح:- مسئله او دلیل دواړه واضح دی.

## د یو ماشوم د دوو ښځود ګډ شوي شیدې حکم

وإذا اختلط لبن امرأتين هر کله چې د دوو ښځو پئ مخلوط شو تعلق التحريم بأغلبهما عند أبي يوسف رحمه الله نو تحریم به متعلق وي په دوی کې د اغلبې سره د امام ابویوسف رحمه الله په نزد لأن الكل صار شيئا واحدا ځکه چې واړه ملاؤ شو یو شی شو فيجعل الأقل تابعا للأكثر في بناء الحكم عليه نو اقل لره به د اکثر تابع کولای شی په دې د حکم د رضاعت په مبنی کاوه کې

تشريح:- مذهب ابي يوسف في ثبوت الحرمة باللبن المخلوط ❁ صورت د مسئلې دا دې. چه د دوو ښځو شیدې (پئ) ګډ شي. او یو ماشوم هغه اوڅکې. نو په دې د حرمت رضاعت په ثبوت کې اختلاف دې. ① امام ابویوسف رحمه الله فرمائي. چه د کومې شیدې غالب وي. هغې سره به حرمت ثابتیږي. دا قول دامام شافعي هم دې
دليل ابي يوسف رحمه الله ❁ دامام ابی یوسف رحمه الله دلیل دا دې. چه دواړه شیدې ګډ شو. نو پشان د یو څیز شو. نو په دې د رضاعت حکم مبنی کولو کې به اقل د اکثر تابع کولې شي.

وقال محمد وزفر يتعلق التحريم بهما(۱) امام محمد رحمه الله او زفر وئیلی دی چې تحریم به د دې دواړو سره متعلق وي لأن الجنس لا يغلب الجنس ځکه چې جنس په جنس باند غالب نه وي فإن الشيء لا يصير مستهلكا في جنسه لاتحاد المقصود په دې وجه چې شی په خپل جنس کې نه شی معدوم کیدای په ملاوید وسره د اتحاد د مقصود په وجه وعن أبي حنيفة رحمه الله في هذا روايتان او د امام ابوحنیفه رحمه الله نه په دې اړه کې دوې [دوه] روایتونه دی

(۱) القول الراجح هو قول محمد رحمه الله كذا في فتح القدير (۲\۳۱۷) وردلمحتار (۳\٤٤٤) والهندية (۱\۳٤٤) والبحر الرائق (۳\۳۹۸) نقلا عن القول الراجح (۱\۳۰۷)-

تشریح:- په زیر بحث مسئله کي امام محمد اوامام زفر رحمه الله فرمائی . چي د دوارو سره حرمت ثابتیږی .اودامام ابوحنیفه رحمه الله نه دوي [دوه] روایتونه منقول دی .په یوروایت کي دامام ابویوسف سره دي.اوپه بل روایت کي دامام محمد اوزفر رحمه الله سره دي.

دلیل محمد رحمه الله ۞دامام محمداوامام زفر رحمهما الله دلیل دا دي.چه هیڅ کله یوخیزپه خپل جنس نه غالب کیږی. خکه چي غلبه په هغه وخت کي متحقق کیږی .چه مغلوب څیزمعدوم شی .اوچه یوڅیزدخپل جنس سره ملاؤ شی .نومعدوم کیږی نه.بلکه په هغې کي زیادت راځی .خکه چي د دوارو مقصود یو دي.نوچه یوڅیزپه خپل جنس کي ګډ شی .نوپه دي کي به یود بل تابع نه وی .اوچه کله یود بل تابع نه وی . نو تحریم د دوارو سره متعلق کیږی .د یوسره به نه متعلق کیږی .

وَأَصْلُ الْمَسْأَلَةِ فِي الْأَيْمَانِ او اصل مسئله په ایمان کي دۀ .

تشریح:-المسئله الاختلاف الاساسیة۞واصل مسئله د باب الیمین ده.صورت د مسئلي دا دي.چه یوکس قسم اوخوړلو.چه زه به د دي وزه شیدي نه خکم.بیا دهغي وزه شیدي د بلي وزه د پیو سره ګډ شو.نوکه د دغه محلوف علیها وزه شیدي مغلوب وو.هغه مسئله هم په دي اختلاف ده.یعنی دامام ابویوسف رحمه الله په نیزبه حانث نه وی .خکه چي مغلوب پشان د معدوم وی .اودامام محمد رحمه الله په نیزبه حانث وی .خکه چي څیزد بل جنس سره په یوځاي کیدو مغلوبه کیږی نه بلکه زیاتیږی .

### دباکرې په پیو د حرمت رضاعت ثبوت

وَإِذَا نَزَلَ لِلْبِكْرِ لَبَنٌ هر کله جه دَ باکرې پۍ راکوز شو فَأَرْضَعَتْ صَبِيًّا نو یو بچی او خوړل تَعَلَّقَ بِهِ التَّحْرِيمُ لِإِطْلَاقِ النَّصِّ نو تحریم به وریورې متعلق کیږی دَ وجه دَ اطلاق دَ نص نه

تشریح:- ثبوت الحرمة بلبن الباكرة۞که دباکرې شیدي پیدا شو.اوباکرې دغه شیدي یوماشوم ته ورکړلو.نود عالمانو رحمهم الله په اتفاق سره په دي باندې حرمت رضاعت ثابتیږی .

دلائله۞خکه چي نص مطلق﴿ وَأُمَّهَاتُكُمُ اللَّاتِي أَرْضَعْنَكُمْ﴾ دي.په باکره اوثیبه کي څه توپیر نه کوی .

وَلِأَنَّهُ سَبَبُ النُّشُوءِ او خکه چي پۍ دَ نشونما سبب دي فَتَثْبُتُ بِهِ شُبْهَةُ الْبَعْضِيَّةِ نو په دي سره به شبهه دَ جزئیت ثابته وی.

تشریح:- ② دوهم دلیل دا دي.چه د باکرې شیدي هم د نشونما سبب دي.نوپه دي کي شبه د بعضیت پیدا شوه.اوچه شبه د جزئیت په کي پیدا شوه.نواحتیاط هم په دي کي دي.چه حرمت رضاعت پرې ثابت شی.

روایة عدم ثبوت الحرمة عن محمد رحمه الله ۞ البته دامام محمدامام شافعی رحمهما الله نه یوروایت دا هم دي.چه د باکرې په پیو سره حرمت رضاعت نه ثابتیږی .خکه چي د باکرې شیدي نادرالوقوع دی .نودا د سرې د پیو سره مشابه شو.اود سرې په پیو حرمت نه ثابتیږی .دغه ډول به په دي پیو هم نه ثابتیږی .

### د مړې ښځې په پیو سره حرمت رضاعت

وَإِذَا حُلِبَ لَبَنُ الْمَرْأَةِ بَعْدَ مَوْتِهَا هر کله چي ئ او لوشل دَ ښځې شیدې روسته دَ دي دَ مرګ نه فَأُوجِرَ الصَّبِيُّ نو بیا ئ دَ بچی په خولې کي او څښول تَعَلَّقَ بِهِ التَّحْرِيمُ نو په دي سره حرمت متعلق وی ﷺ

حل اللغة* ① حلب:لوشل ]

تشریح:- تشریح المفردات۞[أوجر] ماضی مجهول دي.د [وجر] نه مشتق ده.[وجر] او[وجور] هغې ته وائی .چه د خولې په مینځ کي واچولې شی .او [أوجر] په خوله کي اوبه اچول دی .متعدی دوو مفعولینو ته دي.مفعول اول ئې هغه ضمیردي چي راجع دي [لبن المرأة] ته،اوقائم مقام د فاعل دي.او دوهم مفعول ئې [الصبی] دي.(عینی شرح هدایه)



المذهبان في ثبوت الحرمة بلبن المراة الميت۞صورت د مسئلي دا دي.چه یوه ښځه مړه شوه.اود مرګ نه روسته دهغې پیۍ اولوشلي شو.اویوماشوم ته ورکړې شو.نوداحنافو رحمهم الله په نیز په دي باندې حرمت رضاعت ثابتیږی .دا دامام مالك اوامام احمد رحمهما الله قول هم دي

خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ رحمه الله په خلاف دَ امام شافعی رحمه الله هُوَ يَقُولُ: الْأَصْلُ فِي ثُبُوتِ الْحُرْمَةِ إِنَّمَا هُوَ الْمَرْأَةُ ثُمَّ تَتَعَدَّى إِلَى غَيْرِهَا بِوَاسِطَتِهَا هغه فرمائی چي په ثبوت دَ حرمت کي اصل ښځه ده بیا دَ دي په ذریعه سره دَ دي غیر ته متعدی کیږی وَبِالْمَوْتِ لَمْ تَبْقَ مَحَلًّا لَهَا او دَ مرګ په وجه ښځه محل دَ حرمت پاتې نه شوه وَلِهَذَا لَا يُوجِبُ وَطْؤُهَا حُرْمَةَ الْمُصَاهَرَةِ په دي وجه د دي مړې ښځې سره وطی کول موجب دَ حرمت د مصاهرت نه دی

تشریح:- ② اوامام شافعی رحمه الله فرمائی .چه حرمت رضاعت پرې نه ثابتیږی .

دلیل الشافعی رحمه الله ۞ماتن د [بعدالموت] قیدخکه اولګولو.خکه که شیدي تړې د مرګ نه وړاندې اولوشلی شو.او ماشوم ته د مرګ نه روسته ورکړې شو.نوپه دي صورت کي دامام شافعی رحمه الله په نیزهم حرمت ثابتیږی .بهرحال په مختلف فیه صورت کي دامام شافعی رحمه الله دلیل دا دي.چه په حرمت رضاعت کي اصل ښځه ده.یعنی اول د شیدې ورکونکې ښځې اوشیدې رودونکې ماشوم په مینځ کي حرمت رضاعت ثابتیږی .اوددې نه روسته د دغه ښځې په واسطه غیرته حرمت متعدی کیږی .خوداښځه د مرګ په وجه محل د حرمت پاتې نشو.نوخکه به غیرته متعدی کیږی هم نه.اوهم دا وجه ده.که ددې مړې ښځې سره وطی اوشوه.نوحرمت مصاهرت نه ثابتیږی .

وَلَنَا أَنَّ السَّبَبَ هُوَ شُبْهَةُ الْجُزْئِيَّةِ زموږ دلیل دا دي چي سبب دَ حرمت شبهه دَ جزئیت ده وَذَلِكَ فِي اللَّبَنِ لِمَعْنَى الْإِنْشَازِ وَالْإِنْبَاتِ او دا په پیو کي دَ زیاتولو او زرغونو لو په معنی کي ده وَهُوَ قَائِمٌ بِاللَّبَنِ او دا په پیو کي قائم ده وَهَذِهِ الْحُرْمَةُ تَظْهَرُ فِي حَقِّ الْمَيِّتَةِ دَفْنًا وَتَيَمُّمًا او دا حرمت به ظاهریږی د دي مړې ښځې په حق کي دَ دفن کولواو تیمم کولوپه اعتبار سره

حل اللغة* ① النشار:زیاتول ② الانبات: رازرغونول ]

تشریح:-دلیل الاحناف رحمهم الله ۞اوزموږدلیل دا دي.چه په حرمت رضاعت کي دحرمت سبب شبه د جزئیت دي.یعنی د پیو په وجه د ماشوم په غوښه اوهډوکی کي زیادت راځی .نوخکه موږوایو.چه د شیدې څښلو په صورت کي شبه د جزئیت موجود ده.اوهرکله چي د حرمت رضاعت سبب شبه د جزئیت ده.نوددې مړې ښځې په پیو څښلو به حرمت ثابتیږی .

الردعلی قول الشافعی رحمه الله ۞[وهذه الحرمة] په دي عبارت دامام شافعی رحمه الله رد کوی .یعنی دامام شافعی رحمه الله دا قول چي د مرګ په وجه ښځه محل د حرمت رضاعت پاتې نشو.دا غلطه ده.خکه چي دا حرمت د مړې ښځې په حق کي د دفن کاوه په جوازاود تیمم په جوازکي ښکاره کیږی .ددې صورت به دا وی .چه د دي مړې ښځې (زینب) شیدې یوې ماشومې (فاطمه) اوڅکل.اوددغې ماشومې (فاطمه) خاوند (زید) وی .نواوس دا مړه ښځه (زینب) د دغه ماشومې (فاطمه) د خاوند (زید) خواښې شوه.اوښکاره خبره ده.چه زوم د خواښې لپاره محرم وی .نوکه بل څوك نه وی .اودې مړې ښځې (زینب) ته د تیمم ور کاوه اړتیا پیښ شو.نود دې ماشومې (فاطمه) خاوند(زید) به دي (زینب) ته تیمم کوی .خکه چي دا مړه ښځه (زینب) د هغه(زید) رضاعی خواښې ده.

البته ذهن ته دا سوال راځی .چه د حرمت رضاعت خوخپله خاص مینځوی .چه د هغې نه روسته وی .نوحرمت رضاعت نه ثابتیږی .اوکوم صورت چي دلته بیان شو.چه د دي ماشومې خاوند وی .نوچه خاوند ئې وی .نودا خوبیا ماشومه نشوه.اوچه ماشومه نشوه.نوصورت نه صحیح کیږی .خوددې خواب دا دي.چه دا ضروری نه ده.چه ماشومه دي وادۀ شوې وی .بلکه کیداې شی .چه هم په ورکوتوالی کي ئې والدینود

زیدسره نکاح کړی وی .ازمترجم)

أَمَّا الْجُزْئِيَّةُ فِي الْوَطْءِ لِكَوْنِهِ مُلَاقِيًا لِمَحَلِّ الْحَرْثِ او په وطی کې جزء کیدل په دې وجه سره دی چې وطی د داسې محل سره ملاویږی کوم چې د فصل محل دې وَقَدْ زَالَ بِالْمَوْتِ فَافْتَرَقَا او دغه محل په وجه د مرګ زائد شو.

**حل اللغة** ① ملاقیا ملاقات کونکې ② تمیم پوره کول ③ الحرث: فصل]

**تشریح:- الجواب عن قیاس الشافعی** رحمه الله ❁[أما الجزئية] سره د امام شافعی رحمه الله دقیاس ځواب دې چه حرمت رضاعت په حرمت مصاهرت باندې قیاس کول صحیح نه دی .ځکه چې په حرمت رضاعت کې حرمت سبب د تغذی په سبب په هډوکی اوغوښه لوئیدل دی .چه جزئیت پرې ثابتیږی .اوپه حرمت مصاهرت کې د حرمت هغه جزئیت سبب دې چه دهغې په ذریعه ولد پیدا کیږی .اوولد په هغه وخت کې متصور کیږی .چه وطی په محل دحرث کې شوې وی .اود مرګ نه روسته ښځه محل دحرث پاتې نشو.نود مرګ نه روسته ولد هم نشی متصور کیدې.اوچه ولد نشی متصورکیدې.نوجزئیت هم نه ثابتیږی .نورضاعت دمرګ نه روسته په وطی باندې قیاس کول قیاس مع الفارق دې.والله اعلم بالصواب (الکفایه)

**د ښځې په پیو سره د بچی په حقنه کولو کې د حرمت مسئله**

وَإِذَا احْتَقَنَ الصَّبِيُّ بِاللَّبَنِ که حقنه اوکړې شوه بچی ته د ښځې په پیو سره لَمْ يَتَعَلَّقْ بِهِ التَّحْرِيمُ [1] نو په دې سره به حرمت متعلق نه وی

**حل اللغة** ① حقنة :احتقان، حقنه کول، مریض ته د لاندې اندام ( دبر) د اړخه دوائی ورکول.په لویدیځ (د لغت په کتاب) کې دی .چه احتقن صحیح نه دې.بلکه حقن زیات صحیح دې.ځکه چې صاحب د لویدیځ احتقان لازم ګنړلې دې.خو په تاج المصادر کې ذکر دی .چه د احتقان معنی حقنه کول دی .نو صاحب د تاج المصادر احتقان متعدی منلې دې.نو په دې بناء په مجهول صیغه سره استعمالول صحیح دی .

**تشریح:-** صورت د مسئلې دادې.چه د یو بچی په نس کې د حقنه په ذریعه د یوې ښځې شیدې اورسولې شو. نو ددې سره به حرمت د رضاعت نه متعلق کیږی .په ظاهرالروایت کې هم داسې دی .

وَعَنْ مُحَمَّدٍ رحمه الله أَنَّهُ تَثْبُتُ بِهِ الْحُرْمَةُ كَمَا يَفْسُدُ بِهِ الصَّوْمُ د امام محمد رحمه الله نه روایت دې چې حرمت ثابتیږی لکه چې په دې سره روژه فاسدیږی

**تشریح:-** البته په نوادر کې د امام محمد رحمه الله نه نقل دی .چه په دې سره هم حرمت ثابتیږی .امام محمد رحمه الله فرمائی .چه لکه څنګه په حقنه کاوه سره روژه فاسدیږی..دغه ډول د حقنه په ذریعه د بچی په نس کې پیو رسولو سره حرمت رضاعت هم ثابتیږی .

وَوَجْهُ الْفَرْقِ عَلَى الظَّاهِرِ أَنَّ الْمُفْسِدَ فِي الصَّوْمِ إِصْلَاحُ الْبَدَنِ وجه دفرق په ظاهر الروایه ده چې په روژه کې مفسد د بدن اصلاح ده وَيُوجَدُ ذَلِكَ فِي الدَّوَاءِ او دا خبره په دوائی کې موندې شی فَأَمَّا الْمُحَرِّمُ فِي الرَّضَاعِ هر چې محرم دې په رضاعت کې فَمَعْنَى النُّشُوءِ نو هغه معنی ده د زیاتیدو وَلَا يُوجَدُ ذَلِكَ فِي الِاحْتِقَانِ او په حقنه کاوه کې دا معنی نه شی موندې لِأَنَّ الْمُغَذِّيَ وُصُولُهُ مِنَ الْأَعْلَى ځکه غذاور کوونکې شې خو هغه دې د کوم چې رسیدل د لپاسه نه وی

**تشریح:-** د ظاهرالروایت د بیان مطابق په باب احتقان کې د روژې د فساد اود رضاعت د تحریم په منځ کې وجه د توپیر داده.چه د روژې مفسد د بدن اصلاح ده.اود حقنه په ذریعه دوائی رسولو کې د بدن اصلاح

[1] القول الراجح هو ظاهرالرواية كذا فى فتح القدير(٣١٩\٣) والخانية (١٩١\١) والدرالمختار(٤٤٤\٢) والبحر الرائق (٣٩٩\٣) نقلاً عن القول الراجح (٣٠٧\١)-



موجود ده.په دې وجه روژه فاسدیږی .او د رضاعت په محرم کیدلو کې د نشوونما معنی پرته ده.او په حقنه کاوه کې دا معنی نه موجودیږی .ځکه چې غذا ورکونکې شی خو هغه دې.چه د هغې رسول د پورته ( د خولې) د اړخه وی .د لاندې اړخه نه وی .بهرحال هرکله چې دحقنه په ذریعه په پیو رسولو کې نشوونما نه کیږی .کوم چې په رضاعت کې محرم دې.نو په دې سره تحریم نه متعلق کیږی .

**د سړی په پیو د رضاعت عدم ثبوت**

وَإِذَا نَزَلَ لِلرَّجُلِ لَبَنٌ فَأَرْضَعَ بِهِ صَبِيًّا هر کله چې د سړی پۍ راکوز شواو چا بچی له یې ورکړل لَمْ يَتَعَلَّقْ بِهِ التَّحْرِيمُ نو په دې سره تحریم نه متعلق کیږی

**تشریح:- عدم ثبوت الرضاعة بلبن الرجل**❁که د سړی د سینې نه شیدې راووتل.اوهغه یوماشوم ته ورکړل.نود څلورواړه امامانوپه نیزپه دې حرمت رضاعت نه ثابتیږی .

لِأَنَّهُ لَيْسَ بِلَبَنٍ عَلَى التَّحْقِيقِ ځکه چې دا په حقیقت کې پۍ نه دی فَلَا يَتَعَلَّقُ بِهِ النُّشُوءُ وَالنُّمُوُّ نو په دې سره د نشونما تعلق نه شی کیداې وَهَذَا لِأَنَّ اللَّبَنَ إِنَّمَا يُتَصَوَّرُ مِمَّنْ يُتَصَوَّرُ مِنْهُ الْوِلَادَةُ او دا ځکه چې پۍ هغو سره متصور کیداې په کومو سره چې ولادت متصور وی

**حل اللغة** ① النشوء:غټیدل ② النمو:زیاتیدل]

**تشریح:- دلیله**❁ځکه چې دا په حقیقت کې شیدې نه دی .لکه څنګه چې د کب وینه په حقیقت کې وینه نه وی .نوپه دې باندې نشونما هم کیږی .اودا خبره چې د سړی شیدې په حقیقت کې شیدې نه دی .ددې دلیل دا دې.چه شیدې د هغه چا کیداې شی .چه دهغه نه ولادت متصور کیداې شی .اود سړی نه ولادت نه متصور کیږی .نودده شیدې هم شیدې نه دی .اوچه دده شیدې ، شیدې نه دی .نوحرمت رضاعت پرې هم نه ثابتیږی

**د څناوره په پیو سره عدم تحریم**

وَإِذَا شَرِبَ صَبِيَّانِ مِنْ لَبَنِ شَاةٍ او هر که چې دوو بچو د یوې بیزې پۍ او سکل لَمْ يَتَعَلَّقْ بِهِ التَّحْرِيمُ نو په دې سره به تحریم متعلق نه وی لِأَنَّهُ لَا جُزْئِيَّةَ بَيْنَ الْآدَمِيِّ وَالْبَهَائِمِ ځکه چې د نبی آدم او څاروی په منځ کې څه جزئیت نشته وَالْحُرْمَةُ بِاعْتِبَارِهَا او حرمت د جزئیت په اعتبار سره وی .

**تشریح:-** صورت د مسئلې اودلیل ښکاره دې.په دې مقام کې صاحب د اشرف الهدایه مولانا جمیل احمد صاحب یوه واقعه ذکر کړې ده چې محمد بن اسماعیل بخاری رحمه الله به فرمائیل.چه په دې باندې حرمت ثابتیږی .حضرت امام بخاری رحمه الله دامام ابوحفص الکبیر رحمه الله په زمانه کې بخارا ته تشریف اوړې وو.اوفتاوی ورکول ئې پیل کړل.شیخ امام بخاری رحمه الله ته اوفرمائیل.چه دا کار مه کوه.خوامام بخاری رحمه الله د شیخ نصیحت قبول نکړلو.ترې چې یوځل ترې د دې په اړه کې استفتاء طلب شوه.که دوو ماشومانود یوې وزه شیدې اوڅکل.نوڅه حکم دې.حضرت امام بخاری رحمه الله د ثبوت حرمت فتوی ورکړله.ددې نه روسته خلګ راجمع شول.اوامام بخاری ئې د بخارا نه اوویستل.خو په شرح د بخاری کشف الباری کې ددې واقعه په سختو الفاظو سره تردید شوې دې چې د امام بخاری رحمه الله غوندې جلیل القدر محدث ته د یوې داسې واقعه نسبت کول انصاف نه دې هغوی په تفصیل سره د دې تردید کړې دې.والله اعلم بالصواب

**د بالغې ښځکې ماشومې ښځې ته شیدې ورکول اوپه خاوند باندې دواړه حرامیدل**

وَإِذَا تَزَوَّجَ الرَّجُلُ صَغِيرَةً وَكَبِيرَةً او هر کله چې سړی د وړې او لوې سره نکاح او کړه فَأَرْضَعَتِ الْكَبِيرَةُ الصَّغِيرَةَ و هغې لوئې وړې له تې ور کړو حَرُمَتَا عَلَى الزَّوْجِ نو دواړه په خاوند حرامې شوې لِأَنَّهُ يَصِيرُ جَامِعًا بَيْنَ الْأُمِّ وَالْبِنْتِ رَضَاعًا وَذَلِكَ حَرَامٌ ځکه چې دا سړې د رضاعی مور او لور جمع کوونکې شو او دا حرام دی كَالْجَمْعِ بَيْنَهُمَا نَسَبًا لکه چې په نسب کې د دې دواړو جمع کول حرام دی

**تشريح:- حرمة الزوجة الكبيرة بارضاعها الزوجة الصغيرة**۞صورت د مسئلي دا دي.چه د يوكس (زيد) په نكاح كي يوه غټه (زينب) اوبل وړه (خالده) شيدې رودونكې ماشومه ده.كبيرې دغې ماشومې (رضيعي) ته خپل شيدې ورکړل.نودې خاوند باندې به دواړه حرامې شي .امام شافعي اوامام مالك رحمهما الله هم ددې قائلين دي .دكبيرې په حق كي خوحرمت موبده ځكه ثابت شو.چه هغه دخپل خاوند رضاعي خواښې شوه.

**حرمة الصغيرة على الزوج**۞اود صغيرې په اړه كي لږ غوندې تفصيل دې.هغه دا چې ددې خاوند (زيد) د كبيرې سره وطي شوی وی .اودهغه وطی نه ددې كبيرې ماشوم پيدا شي .اوبيا دغه كبيره د خپل خاوند ښځې ته شيدې ورکړي .نوپه دې صورت كي دا ماشومه په دې خاوند باندې په حرمت موبده سره حرامه شوه.ځكه چې دا دده رضاعي لور شوه.اودې ئې رضاعي پلار شو.

دليله۞بهرحال د صغيرې اوكبيرې دواړو دحرمت وجه دا ده.چه دا دواړه رضاعي موراولور شوې.اود رضاعي مور اولور په نكاح كي جمع كول داسې حرام دی .لكه څنګه چې د نسبي موراولور په نكاح كي جمع كول حرام دی .

| |
|---|
| **ثُمَّ اِنْ لَمْ يَدْخُلْ بِالْكَبِيْرَةِ فَلَا مَهْرَ لَهَا** بيا كه دخول ئې د لوئې سره نه وه كړې نو مهر ورته نشته **لِاَنَّ الْفُرْقَةَ جَاءَتْ مِنْ قِبَلِهَا قَبْلَ الدُّخُوْلِ بِهَا** ځكه چې فرقت راغلي دې دَ دې دَ جانب نه مخكې دَ دخول نه دَ دې سره |

**تشريح:-** په دې عبارت سره د مهرحكم بيانوی .كه خاوند په كبيره باندې دخول نه وی كړې.نوپه هغې مهرنه لازميږی .كه هغې په شيدې وركولوكي د نكاح د فسخ كولواراده كړې وی اوكه نه.

دليل دا دې.چه قبل الدخول بيلتون راشی .نوكه دا بيلتون د ښځې د اړخه راغلي وی .نودا د مهرمستحق نه ده.اوچونكه په دې صورت كي صغيرې ته شيدې كبيرې وركړې دی .اوبيلتون د دې په وجه راغلې دې.نوځكه دا مستحقه د نيم مهر هم نه ده.

**وجوب جميع المهربعدالدخول**۞اوكه خاوند په دې كبيره باندې دخول كړې وی .نوددې لپاره پوره مهر واجب ده.خودا ده.چه په خاوند به د عدت خرچه نه وی .ځكه چې جنايت د كبيرې د اړخه شوې دې.

| |
|---|
| **وَلِلصَّغِيْرَةِ نِصْفُ الْمَهْرِ** او دَ ورې دَ پاره به نيم مهر وی **لِاَنَّ الْفُرْقَةَ وَقَعَتْ لَا مِنْ جِهَتِهَا** ځكه چې فرقت دَ دې دَ جانب نه دې واقع شوې **وَالْاِرْتِضَاعُ وَاِنْ كَانَ فِعْلًا مِنْهَا لٰكِنْ فِعْلُهَا غَيْرُ مُعْتَبَرٍ فِيْ اِسْقَاطِ حَقِّهَا كَمَا اِذَا قَتَلَتْ مُوَرِّثَهَا** او شيدې خوړل اګر چې د دې فعل دې ليكن دَ دې فعل دَ دې حق لره په ساقطولو كي معتبر نه دې لكه مورث خپل لره چې صغيره قتل كړی |

**حل اللغة*** ① **الارتضاع**: شيدې وركول ② **اسقاط**:ساقط كول]

**تشريح:- المذهبان في وجوب نصف المهر للصغيرة**۞پاتې شوه دا خبره چې د صغيرې لپاره به مهر وی .اوكه نه.

① نو داحنافو رحمهم الله په نيز صغيرې لپاره نيم مهرواجب دې.② اوامام مالك رحمه الله فرمائی .چه مهر واجب نه دې.

دامام مالك رحمه الله دليل دا دې.چه فرقت د صغيرې داړخه هم واقع شوې دې.ځكه چې دا د كبيرې لور شوه.نولكه څنګه چې كبيره د مهرمستحق نه ده.دغه ډول صغيره هم مستحق نه ده.

**دلائل الاحناف** رحمهم الله ۞داحنافو رحمهم الله دليل دا دې.① چه د صغيرې داړخه بيلتون نه دي واقع شوې.اوكه څوك دا اعتراض اوكړی .چه شيدې څښل خود صغيرې فعل دې.اوهم د دې فعل په وجه بيلتون واقع شو.نوموږ ځواب وركوو.چه مونږدا منو.چه شيدې څښل د صغيرې فعل دې.اوهم په دې فعل باندې بيلتون واقع شو.خودا ده.چه د صغيرې فعل ددې د حق په ساقط كولوكي معتبر نه دې.ځكه چې دا د شريعت په احكامومكلفه نه ده.نوځكه به ددې په فعل د شريعت حكم نه مرتب كيږی .اودا داسې شوه.لكه چې صغيره خپل مورث قتل كړی .نوددې قتل په وجه دا د خپل ميراث نه نه محرومه كيږی .اګرچه قتل ددې فعل



دې.او شريعت د مورث قاتل د ميرات نه محرومه كړې دې.ځكه چې د صغيرفعل د خپل حق په ساقطولو كي معتبر نه وی .

| |
|---|
| **وَيَرْجِعُ بِهِ الزَّوْجُ عَلَى الْكَبِيْرَةِ اِنْ كَانَتْ تَعَمَّدَتْ بِهِ الْفَسَادَ** او اخلی به نيم مهر خاوند دَ كبيرې نه كه دې اراده كړې وه دَ فساد دَ نكاح **وَاِنْ لَمْ تَتَعَمَّدْ فَلَا شَيْءَ عَلَيْهَا، وَاِنْ عَلِمَتْ بِاَنَّ الصَّغِيْرَةَ امْرَاَتُهٗ** او كه اراده ئې نه وه كړې نو په كبيره به هيڅ نه وی اګر كه دا پوهه وه چې صغيره د هغه ښځه ده |

**تشريح:-** خاوند چې كوم نيم مهر صغيرې ته وركړی .نود هغه مهر د كبيرې نه د اخستلواجازت ورته شته كه نه؟ په دې اړه كي اختلاف دې.① ظاهرروايت كي دا وائی .كه كبيرې په شيدې وركولوكي دَ نكاح د فسخ كولواراده وه.چه زه دې ته شيدې وركړم.نوددې نكاح به ورسره ختمه شي .نو خاوند به په كبيره باندې د هغه نيم مهررجوع كوی .كوم چې ده صغيرې ته ادا كړی وی .اوكه دنكاح د فسخې اراده ئې نه وی .بلكه د صغيرې نه لوږه او هلاكت لرې كولواراده ئې وی .نوپه دې صورت كي به په كبيره باندې د نيم مهررجوع نه كوی .اګرچه كبيرې ته دا علم وی .چه صغيره دده ښځه ده.

| |
|---|
| **وَعَنْ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللّٰهُ اَنَّهٗ يَرْجِعُ فِي الْوَجْهَيْنِ. وَالصَّحِيْحُ ظَاهِرُ الرِّوَايَةِ** او دَ امام محمد رحمه الله نه روايت دې چې په دواړو صورتو نو كي به رجوع كوی او صحيح ظاهر الروايه دې |

**حل اللغة*** ① **الاتلاف**:هلاكول ② **شرف**:نزدې ]

**تشريح:-** اودامام محمد رحمه الله نه د نوادر په روايت كي دی .چه خاوندبه په دواړو صورتونوكي په كبيره باندې د نيم مهر رجوع كوی .كه دې دنكاح د فسخې اراده كړې وی اوكه نه.هم دا قول د امام زفرامام شافعي اوامام احمد رحمهم الله هم دې.اګرچه صحيح ظاهر روايت دې.

**دليل محمد** رحمه الله ۞دامام محمد رحمه الله دليل دا دې.چه دا كبيره د نكاح د فسخ مسببه ده.اوقاعده دا ده.چه مسبب پشان د مباشر وی .هم دا وجه ده.كه يوكس د چا د پنجرې دروازه كهولاؤ كړله.اوپرنده ترې والوتله.يا ئې د اصطبل دروازه كهولاؤ كړله.اواس اوتختيدلو.اويا ئې د قيدی د پښولاسو نه هتكړئ پرانستې.اوهغه اوتختې.نوپه دې دروازه پرانستونكی به ضمان واجب وی .اګرچه دې مباشر نه دې..خومسبب خودې.خومسبب د مباشرپشان ګرځولې شی .اوپه ده باندې هغه حكم كولې شی .كوم چې په مباشرباندې كولې شی .اوپه مباشرت كښې متعدی (ظلم كونكې) اوغيرمتعدی دواړه برابردی .نودغه ډول به مسبب (سبب پيدا كونكې) هم كه متعدی وی اوكه غيرمتعدی وی .برابر وی .ددې امله امام محمد رحمه الله فرمائی .چه كبيرې شيدې وركړل.نوتعدی ئې اوكړله.(كه د نكاح د فسخ كيدو اراده ئې كړی وی اوكه نه) يعنی كه د نكاح د فسخ كيدو اراده ئې نه وی كړې.نوبيا هم په دواړو صورتونوكي خاوند به د كبيرې نه نيم مهر اخلی .(عنايه)

| |
|---|
| **لِاَنَّهَا وَاِنْ اَكَّدَتْ مَا كَانَ عَلٰى شَرَفِ السُّقُوْطِ وَهُوَ نِصْفُ الْمَهْرِ** ځكه چې كبيرې اګر چې دې لره موكد كړو كوم چې ساقطيدو ته نزدې وه او هغه نيم مهر دې **وَذٰلِكَ يَجْرِيْ مَجْرَى الْاِتْلَافِ** او دا دَ تلف كيدو قائمقام دې |

**تشريح:-** دظاهرروايت دليل دا دې.چه د صغيرې نيم مهر ساقط كيدو ته نزدې وو.په دې طريقه چې دا بالغه شوې وه.اوخپل قبل الدخول ئې د خاوند خوئی ته بوسه وركړې وه.يا العياذبالله مرتده شوې وه.نوپه دې دواړو صورتونوكي به ددې واړه مهرساقط كيدل.خوهركله چې كبيرې دې ته شيدې وركړل.نوددې نيم مهر ئې مؤكد كړلو.او دا تاكيد د ضمان په واجب كولوكي د هلاكت قائم مقام دې.لكه چې كبيرې صغيرې ته شيدې وركړل.اودخپل خاوند نيم مهرئې هلاك كړلو.(يعنی كوم نيم مهرچه ساقط كيدونكې وو.نود خاوند په حق كي هغه د ساقطيدو موقع كبيرې خرابه كړله

| |
|---|
| **لٰكِنَّهَا مُسَبِّبَةٌ فِيْهِ** ليكن كبيره په دې كي مسببه ده **اِمَّا لِاَنَّ الْاِرْضَاعَ لَيْسَ بِاِفْسَادٍ لِلنِّكَاحِ وَضْعًا وَاِنَّمَا ثَبَتَ ذٰلِكَ** |

بِاتِّفَاقِ الْحَالِ یا خو خکه چې پې ورکول افساد دَ نکاح نه دې وضعًا دا خو په طور دَ اتفاق ثابت شو أَوْلِأَنَّ إِفْسَادَ النِّكَاحِ لَيْسَ بِسَبَبٍ لِإِلْزَامِ الْمَهْرِ بَلْ هُوَ سَبَبٌ لِسُقُوطِهِ یا خکه چې افساد دَ نکاح دَ الزام دَ مهر سبب نه دې بلکه دَغه دَسقوط دَ مهر سبب دې

**تشریح:-کون الارضاع هوالسبب لا العلة**﴿خودلته دې دا خبره یاده وی .چه دا کبیره د مهرپه اتلاف کې مسببه ده.مباشره نه ده.یعنی د کبیرې د شیدې ورکولوفعل د فسخ نکاح لپاره سبب دې علت نه دې.خکه چې د کبیرې شیدې ورکول ددې لپاره نه دی وضع شوی .چه په دې باندې دې نکاح فسخ کیږي .بلکه ددې وضع د بچې د تربیت اودهغه دنشونما لپاره ده.خودلته دا یواتفاقي خبره وه.چه ددې په شیدې ورکولوفسخ د نکاح راغله.اودا خبره اتفاقي خکه ده.که چرته کبیرې د بل کس صغیرې ښځې ته شیدې ورکړی وو.نوهغه په خپل خاوند باندې نه حرامیدله. دلته خو خکه حرامه شوه.چه صغیره اود کبیرې خاوند رضاعي پلار اولور شول.اوددې خبرې دلیل چې کبیره مسببه ده.دا دې.چه فساد د نکاح د مهرلازمولوسبب نه دې.بلکه د مهرد سقوط سبب دې.خکه چې کله مبدل (منافع د بضعې) فوت شي .نودهغې په وجه به بدل (مهر) هم فوت کیږي .

إِلَّا أَنَّ نِصْفَ الْمَهْرِ يَجِبُ بِطَرِيقِ الْمُتْعَةِ عَلَى مَا عُرِفَ مگر دا چې نیم مهر په طریقه دَ متعه واجب دې لکه چې معلومه شوه لَكِنْ مِنْ شَرْطِهِ إِبْطَالُ النِّكَاحِ لیکن دَ دې د وجوب شرط ابطال دَ نکاح دې وَإِذَا كَانَتْ مُسَبِّبَةً هر کله چې کبیره مسببه ده يُشْتَرَطُ فِيهِ التَّعَدِّي كَحَفْرِ الْبِئْرِ نو تعدی به پکې شرط وی لکه خاه کنستل ثُمَّ إِنَّمَا تَكُونُ مُتَعَدِّيَةً إِذَا عَلِمَتْ بِالنِّكَاحِ وَقَصَدَتْ بِالْإِرْضَاعِ الْفَسَادَ بیا به کبیره متعدیه هغه وخت وی کله چې پوهه وی او په پیو ور کاوه سره دَ فساد دَ نکاح اراده او کړی أَمَّا إِذَا لَمْ تَعْلَمْ بِالنِّكَاحِ او هر کله چې دَ نکاح علم ورته نه وی أَوْ عَلِمَتْ بِالنِّكَاحِ وَلَكِنَّهَا قَصَدَتْ دَفْعَ الْجُوعِ وَالْهَلَاكِ عَنِ الصَّغِيرَةِ دُونَ الْفَسَادِ یا دَ نکاح علم ورته وی لیکن دَ صغیرې دَ لوږې او هلاکت لرې کاوه اراده او کړی نه چې دَ افساد دَ نکاح لَا تَكُونُ مُتَعَدِّيَةً نو دا به متعدیه نه وی لِأَنَّهَا مَأْمُورَةٌ بِذَلِكَ خکه چې دا شرعًا په دې ماموره ده وَلَوْ عَلِمَتْ بِالنِّكَاحِ وَلَمْ تَعْلَمْ بِالْفَسَادِ او که نکاح ورته معلوم وه او فساد دَ نکاح ورته معلوم نه وه لَا تَكُونُ مُتَعَدِّيَةً أَيْضًا بیا به هم متعدیه نه وی

**تشریح:-الجواب عن السوال التقدیري**﴿خودلته یوسوال کیږي .چه تاسوځنګه وائې.چه فساد د نکاح سبب د مهرد لزوم نه دې.حالانکه په دې صورت کې د نکاح په فساد سره د صغیرې لپاره په خاوند باندې نیم مهرلازمیږي .نوعلامه مرغینانی رحمه الله دې سوال نه ځواب په دې الفاظوسره کوي .[إلا أن نصف المهر] یعنی د صغیرې لپاره نیم مهرد متعې په طورواجب دې.د مهرپه حیثیت نه دې.لکه وړاندې چې معلومه شوه دې (په باب المهر کې)

تو دا چې دا نیم مهرد متعې په طورواجب دې.خود وجوب متعې شرط د نکاح باطلیدل دی .اودلته هم هغه شرط موجود شوې دې.خکه چې دکبیرې د شیدې ورکولوپه وجه د صغیرې نکاح باطله شوه.نوخکه د صغیرې لپاره نیم مهرواجب کړې شو.

﴿بهرحال دا ثابته شوه.چه کبیره په شیدې ورکولوکې مسببه ده مباشره نه ده.اودشیخینو رحمهما الله په نیزد ضمان واجب کولوپه حق کې مسبب د مباشرپشان نه وی .بلکه په دواړوکې توپیر دې.فرق دا دې.چه په مسبب باندې د ضمان د وجوب لپاره شرط دا دې.چه دده د اړخه تعدی هم موجود شوې وی .مثلاً که یوکس په عامه لاریا دچا په مملوکه مځکه کې خاه اوکنل.اوپه دغه کوهی کې څوک ورپریوتل.نوپه ده باندې ضمان لازم شو.خکه چې دې دهلاکت سبب اوګرځیدل.اودده داړخه تعدی هم موجود شوې ده.خکه چې په عام لاراودبل په مملوکه مځکه کې ئې تصرف کړې دې.اوکه ده په خپله مځکه کې کوهی کنلې وی .اوڅوک په کې ورپریوتل.نوضمان پرې نه لازمیږي .اګرچه سبب ئې هم دا کنستونکې دې.خوچونکه دده د اړخه تعدی



نه ده موجود شوې بلکه په خپله مملوکه مځکه کې ئې خاه کنلې دې.اوپه مباشرباندې دضمان واجب کاوه لپاره تعدی شرط نه دې.که تعدی وی اوکه نه وی .په دواړو صورتونوکې پرې ضمان واجب دې.

وَهَذَا مِنَّا اعْتِبَارُ الْجَهْلِ لِدَفْعِ قَصْدِ الْفَسَادِ لَا لِدَفْعِ الْحُكْمِ او دازموږ دَ اړخ نه دَ جهل اعتبار دَ پاره دَ دفع دَ قصد دَ فساد دې نه چې دَ پاره دَ دفع دَ حکم .

**تشریح:- الصورالثلاث للمسئلة**﴿حاصل دا شو.① چه کبیره د نکاح د باطل کولومسببه ده.مباشره نه ده.اوتعدی به په هغه صورت کې موجودیږي .چه دې ته دا علم وی .چه صغیره زما د خاوند په نکاح کې ده.اوزما په شیدې ورکولونکاح ماتیږي .اودې په دې اراده باندې شیدې ورکړل.چه ددې نکاح ورسره ماته شي .اوکه کبیرې ته د صغیرې د نکاح علم نه وی .② یاورته علم وی .خود شیدې په ورکولوکې مقصد د نکاح باطلول نه وی .بلکه هغه د هلاکت نه بچ کول ئې مقصود وی .نوپه دې صورت کې به کبیره متعدیه نه وی .خکه چې دا د هلاکت په لرې کولوباندې شرعاً ماموره ده.اودثواب مستحق ده.خکه چې نبی ﷺ فرمانیلی دی .[أفضل الأعمال إشباع كبد جائع] وږی ته ډوډۍ ورکول بهترین عمل دې.③ اوکه کبیرې ته دا علم وی .چه صغیره زما د خاوند په نکاح کې ده.خودا علم ورته نه وی .چه په دې باندې نکاح فسخ کیږي .نوپه دې صورت کې هم دا متعدیه نه ده.

﴿**الاشکال**﴾اوپه [و هذا منا إعتبار الجهل] سره دیوسوال ځواب دې.د سوال حاصل دا دې.چه په دارالاسلام کې د شریعت دحکم نه جاهل پاتې کیدل عذر نه دې.نوپه دې صورت کې چې کبیرې ته په شیدې ور کاوه دنکاح د فسخ کیدو علم نه وی .دا ولې عذر ګڼړلې شي ؟خکه چې ددې د عذرپه منلوکې په دې باندې ضمان نه واجبیږي .

﴿**الجواب**﴾دځواب حاصل دا دې.چه حکم شرعي یعنی په کبیره باندې د نیم مهر وجوب ددې په تعدی باندې موقوف دې.خوچه کبیرې ته دا علم نه وی .چه په شیدې ورکولوسره نکاح فاسدیږي نود فساد علم منتفي شو.نود نکاح د فساد قصد هم منتفي شو.نود جهل اعتبارپه قصد سره د نکاح د فسادپه وجه شوې دې.د شرعي حکم د دفع کاوه لپاره نه دې شوې.(یعنی دلته چې موږ د کبیرې جهل ته اعتبارور کړلو.اودا مود ضمان نه مبرا کړه.ددې امله نه چې د شرعي حکم نه ددې جهالت عذراوګڼړلې شو.بلکه ددې امله چې ددې په پیو ورکولوکې د نکاح د فساد مقصد منتفي شي .اودا متعدیه شمارنشي )

﴿**الاشکال الثاني وجوابه**﴾خوپه دې باندې اعتراض کیږي .چه دفساد قصد دفع کول مستلزم دی . د شریعت حکم دفع کولولره.نود جهل اعتبارد شریعت د حکم دفع کاوه لپاره شو.نواعتراض په خپل ځائې پاته پاتې شو.ځواب دا خبره په ضمن کې راځي .نوددې به څه اعتبار نه وی .(عنایه فتح القدیر والله اعلم بالصواب

## د رضاعت د ثبوت لپاره د ګواهانواعتبار

وَلَا تُقْبَلُ فِي الرَّضَاعِ شَهَادَةُ النِّسَاءِ مُنْفَرِدَاتٍ او نه به شي قبلولې په رضاعت کې یواځې دَ ښځو ګواهی وَإِنَّمَا تَثْبُتُ بِشَهَادَةِ رَجُلَيْنِ أَوْ رَجُلٍ وَامْرَأَتَيْنِ بلکه دَ رضاعت ثبوت دَ دوو سړو یا یو سړی او دوو ښځو په ګواهی سره به وی

**تشریح:- المذاهبان في ثبوت الرضاعة**﴿ صورت د مسئلې دادې.چه رضاعت به د کومو کسانو په شهادت سره ثابتیږي .① نوزموږ په نیزد رضاعت د ثبوت لپاره صرف د ښځوګواهی نه کافي کیږي .یا به دوې [دوه] سړي اویا یو سړي اودوې [دوه] ښځې وی

وَقَالَ مَالِكٌ رَحِمَهُ اللَّهُ: تَثْبُتُ بِشَهَادَةِ امْرَأَةٍ وَاحِدَةٍ إِذَا كَانَتْ مَوْصُوفَةً بِالْعَدَالَةِ امام مالك رحمه الله فرمائي چې دَ یوې ښځې په ګواهی سره رضاعت ثابتیږي کله چې دغه په عدالت سره موصو فه وی لِأَنَّ الْحُرْمَةَ حَقٌّ مِنْ حُقُوقِ الشَّرْعِ خکه چې حرمت منجمله دَ حقوقو دَ شرع نه یو حق دې فَتَثْبُتُ بِخَبَرِ الْوَاحِدِ نو ثابتیږي په خبر دَ یو کس سره

**تشریح:-** اوامام مالك رحمه الله په نیز ددي ښځي په ګواهۍ رضاعت ثابتیږي .خوپه دي شرط چې د عدالت په صفت موصوف وی .

**دلیل مالک** رحمه الله ﴿داامام مالك رحمه الله دلیل دا دي.چه حرمت د شریعت د حقوقو څخه دي.اود شریعت حقوق دیني اموروی .اوپه دیني امورو کې د یوکس ګواهي معتبر وی .(که هغه یوکس سړی وی اوکه ښځه خوپه دي شرط چې عادل وی .

كَمَنْ اشْتَرَى لَحْمًا لکه یو سړي چې غوښه نې واغسته فَأَخْبَرَهُ وَاحِدٌ أَنَّهُ ذَبِيحَةُ الْمَجُوسِيِّ نو یو کس ور ته خبر ور کړو چې دا ذبیحه دَ مجوسی ده

**تشریح:-** مثلا یوکس غوښه واخستله.اودغه مشتری ته یوعادل کس خبر ورکړلو.چه دا غوښه د اتش پرست ذبیحه ده.نوپه مشتری باندې دهغه غوښې خوړل په خپله هم حرام دی .اوپه بل باندې ئې خوراك كول هم حرام دی .څکه چې دا یودیني امردې.نومعلومه شوه.چه ددیني امورو د ثبوت لپاره د یوکس ګواهي کافي ده.

وَلَنَا أَنَّ ثُبُوتَ الْحُرْمَةِ لَا يَقْبَلُ الْفَصْلَ عَنْ زَوَالِ الْمِلْكِ فِي بَابِ النِّكَاحِ زموږ دلیل دا دي چې ثبوت دَ حرمت دَ زوال دَ ملك نه جدائی نه قبلوی په باب دَ نکاح کې وَإِبْطَالُ الْمِلْكِ لَا يَثْبُتُ إِلَّا بِشَهَادَةِ رَجُلَيْنِ أَوْ رَجُلٍ وَامْرَأَتَيْنِ او ابطال دَ ملك نه ثابتیږی مګر په شهادت دَ دوو سړو یا دَ یو سړی او دوو ښځو

**تشریح:-دلیل الاحناف** رحمهم الله ﴿زموږ دلیل دا دي.چه د نکاح په باب کې ثبوت د حرمت د ملك د زوال نه جلا کیږی نه.یعنی دا نشی کیداې چې د رضاعت په وجه حرمت نکاح ثابته شی .اوملك نکاح پاته وی .څکه چې د حرمت مؤبده سره بقاء ممکن نه ده.نوهرکله چې د رضاعت په سبب حرمت ثابت شی .نونکاح به هم ختمه شي.اود زوال ملك لپاره دوه سړی به ګواهي ورکوی .اویا یو سړي اودوې [دوه] ښځې.

بِخِلَافِ اللَّحْمِ په خلاف دَ غوښې نه لِأَنَّ حُرْمَةَ التَّنَاوُلِ تَنْفَكُّ عَنْ زَوَالِ الْمِلْكِ څکه چې حرمت دَ تناول دَ زوال دَ ملك نه جلا وی فَاعْتُبِرَ أَمْرًا دِينِيًّا، وَاللَّهُ أَعْلَمُ بِالصَّوَابِ نو دې لره به معتبر ولې شی امر دیني والله تعالی اعلم .

**تشریح:-** اتې شوه د غوښې خبره.نود یوڅیزحرمت د زوال ملك نه جلا کیداې شی .یعنی دا کیداې شی .چه یود یو څیزخوراك دې حرام وی .اوبیا دې هم په ملکیت کښې وی .حاصل دا چې خوراك ئې حرام وی .نوهم په ملك کې پاتې کیداې شی .مثلاً یوکافروی .دهغه سره شراب وی .اودې مسلمان شی .نود مسلمانیدو نه روسته هم په دغه شرابودده ملکیت پاته دې.دغه ډول یوکس باندې خاوره حرامه ده.خوددې باوجود هغه دده په ملك کې پاته وی .نودغه ډول غوښه د مشتری لپاره حرامه ده.خوپه ملك کښې ئې پاته ده.نوپه دې صورت کې د یوکس ګواهي سره د غوښې په حرمت باندې شو.د ملکیت په زوال باندې نشو.اوحرمت یودیني امردې.اووړاندې معلومه شوې ده.چه په دیني امورو کې د یوکس ګواهي معتبرده.نوځکه د یوکس په خبر ورکولوسره دا غوښه حرامه شوه.

## کتاب الطلاق

ژباړه:- دا باب د طلاق په بیان کښې دې .(او) دا باب د سنت طلاق په بیان کښې دې .

**الربط بما قبله** ﴿مصنف رحمه الله چې د نکاح داحکامونه فارغ شو.نواوس د طلاق قسمونه اواحکام بیانوی .چونکه نکاح په وجود کې مقدم وی .اوطلاق لاحق وی .نوځکه ئې په ذکرکې هم اول د نکاح او وروسې د طلاق بیان اوکړلو.اوطلاق ئې د رضاعت نه روسته څکه ذکرکړل.چه په دې کې هریو د حرمت موجب دې.خودومره ده چې رضاعت د حرمت مؤبده موجب دې.اوطلاق دغیرمؤبده.نوچونکه د رضاعت حرمت اشد وو.هغه ئې څکه مقدم کړلو.اود طلاق حرمت اخف وو.نودا ئې په هغې پسې ذکرکړلو.



**معنی الطلاق لغة وشرعاً** ﴿په لویدیځ کتاب کې دی .چه طلاق مصدر دې د تطلیق په معنی .لکه څنګه چې سلام د تسلیم په معنی کې دې.اوکلام د تکلیم په معنی کې .په لغت کې طلاق مطلق قید پورته کاوه او ختمولو ته وائی .اود شریعت په اصطلاح کې د نکاح قید په مخصوص الفاظوسره پورته کاوه اوختمولو ته وائی .

**اقسام الطلاق** ﴿بیاطلاق په دوې [دوه] قسمه دې.① طلاق سنی ②اوطلاق بدعی .بیا طلاق سنی په دوې [دوه] قسمه دي.① سنی من حیث العدد ②اوسنی من حیث الوقت.بیا د سنی من حیث العدد دوې [دوه] قسمونه دی .① حسن ②اواحسن.اود طلاق بدعی هم دوې [دوه] قسمونه دی .① بدعی من حیث العدد ②اوبدعی من حیث الوقت.علامه مرغینانی رحمه الله په مختلفوطریقوددې ټولو انواعو او قسمونواحکاموذکرکړې دې.

### د احسن طلاق تعریف

قَالَ الطَّلَاقُ عَلَى ثَلَاثَةِ أَوْجُهٍ: حَسَنٌ، وَأَحْسَنُ، وَبِدْعِيٌّ طلاق په درې قسمه دی حَسن أحسن او بدعی فَالْأَحْسَنُ أَنْ يُطَلِّقَ الرَّجُلُ امْرَأَتَهُ تَطْلِيقَةً وَاحِدَةً فِي طُهْرٍ لَمْ يُجَامِعْهَا فِيهِ نو احسن طلاق دا دی چې طلاق ورکړی سړې خپلې ښځې ته یو طلاق په داسې طهر کې چې په دې کې ئې ورسره وطی نه وی کړی وَيَتْرُكَهَا حَتَّى تَنْقَضِيَ عِدَّتُهَا بیائې پرېږدی تردې چې عدت ئې تیر شی

**تشریح:- تعریف الطلاق الاحسن** ﴿صاحب دقدوری رحمه الله د طلاق د قسمونوبیانولونه روسته د طلاق احسن تعریف کوی .نوفرمائی .چه طلاق احسن دا دي.چه سړې خپلې ښځې ته په داسې طهرکې طلاق ورکړی .چه ده ورسره صحبت نه وی کړې.اوبیا ئې پرېږدی .تردې چې عدت ئې پوره شی

لِأَنَّ الصَّحَابَةَ رضي الله عنهم كَانُوا يَسْتَحِبُّونَ أَنْ لَا يَزِيدُوا فِي الطَّلَاقِ عَلَى وَاحِدَةٍ حَتَّى تَنْقَضِيَ الْعِدَّةُ()څکه صحابه کرامو به خوښول دا چې دَ یو طلاق نه زیات ورنه کړی فَإِنَّ هَذَا أَفْضَلُ عِنْدَهُمْ مِنْ أَنْ يُطَلِّقَهَا الرَّجُلُ ثَلَاثًا عِنْدَ كُلِّ طُهْرٍ وَاحِدَةً او دا دَ دوی په نزد دَ دې نه غوره وه چې سړې درې طلاقه ورکړی په هر طهر کې یو طلاق

**تشریح:- دلائله** ﴿① دلیل دا دي.چه صحابه کرامو رضي الله عنهم به دا خبره خوښوله.چه دیوطلاق نه زیات ورنکړې شی .تر دې چې عدت تیرشی .اودا دهغوی په نیزبهتروو.

وَلِأَنَّهُ أَبْعَدُ مِنَ النَّدَامَةِ او څکه چې دا دَ ندامت نه ډیره لرې ده وَأَقَلُّ ضَرَرًا بِالْمَرْأَةِ او دَ ښځې ضرر پکې کم دې

**تشریح:-** دوهم عقلي دلیل دا دي.چه دا طلاق پښیمانتیا لرې کولوته هم نزدې دې.اوښځې ته هم کم تکلیف رسی .دپښیمانتیا نه خوڅکه لرې دې.چه د یوطلاق نه روسته که دې اوغواړی .نوپه عدت کې ورته رجوع کولې شی .چه رجوع ورته اوکړی .صرف تجدید دنکاح به اوکړی .حلالې ته هم څه اړتیا نشته.اوداسې کارکول چې په هغې کې د تدارك ګنجائش موجود وی . دالله تعالی په نیزهم ښه دې.الله تعالی فرمائیلی دی ((لَعَلَّ اللَّهَ يُحْدِثُ بَعْدَ ذَلِكَ أَمْرًا)) اوپه ښځه باندې ضرر هم کم څکه دې.چه په دې صورت کې په ښځه باندې عدت نه اوږدیږی .اوچه د یوطلاق نه زیات ورکړی .نوبعضې وخت عدت اوږدیږی .هغه داسې چې طلاق ورکړی اورجوع ورته اوکړی .بیا طلاق ورکړی اورجوع ورته اوکړی .

وَلَا خِلَافَ لِأَحَدٍ فِي الْكَرَاهَةِ او دَ کراهت په اړه کې ئې دَ چا اختلاف نشته .

**تشریح:-عدم کراهة الطلاق الاحسن** ﴿د طلاق احسن په عدم کراهت باندې د ټولواتفاق دې.ددې د کراهت څوك هم قائل نه دې.په خلاف دطلاق حسن څکه چې په هغې کې دامام مالك رحمه الله اختلاف دې.

---

[1])من أثر ابرهیم النخعی رحمه الله أخرجه ابن ابی شیبة فی مصنفه ( نصب الرأیة ۳ / ۲۹۲ ) .

## دطلاق حسن اوسنت تعریف

**وَالْحَسَنُ هُوَطَلَاقُ السُّنَّةِ** او حسن دغه طلاق سنت دی **وَهُوَأَنْ يُطَلِّقَ الْمَدْخُولَ بِهَاثَلَاثًافِي ثَلَاثَةِأَطْهَارٍ** او هغه دا دی چي مدخول بهالره دري طلاقه ورکړی په دري طهر ونو کي

**تشریح:-وجه اطلاق السنة على الطلاق**۞مصنف رحمه الله چي طلاق حسن ته د سنت نوم په امام مالک رحمه الله باندي د رد په غرض ورکړلو.ځکه چي طلاق في نفسه عبادت نه دي.چه په دي باندي ثواب ملاؤ شی .نوبیا د مسنون معنی دا شوه.چه دا طلاق په سنت سره ثابت دي.اوددي مرتکب مستحق د ملامتیا نه دي.

**المذهبان في حکم الطلاق الحسن**۞د طلاق حسن (طلاق سنت) تعریف دا دي.چه خاوند خپلي ښځي ته په دري طهرونو کي دري طلاق ورکړي .

**وَقَالَ مَالِكٌ رَحِمَهُ اللَّهُ: إِنَّهُ بِدْعَةٌ وَلَا يُبَاحُ إِلَّا وَاحِدَةً** امام مالک رحمه الله فرمائی چي دا بدعت دي او مباح نه دی مګر یو دي **لِأَنَّ الْأَصْلَ فِي الطَّلَاقِ هُوَالْحَظْرُ** ځکه چي اصل په طلاقو کي ممانعت دي **وَالْإِبَاحَةُ لِحَاجَةِ الْخَلَاصِ وَقَدِ انْدَفَعَتْ بِالْوَاحِدَةِ** او اباحت دَ اړتیا دَ خلاصی په وجه دي او دغه په یوسره پوره شو

**تشریح:-** اوامام مالک رحمه الله فرمائي .چه دا طلاق بدعت دي.

**دليل مالک رحمه الله**۞دامام مالک رحمه الله دلیل دا دي.چه په طلاق کي ممانعت اصل دي.ځکه چي نبی ﷺ فرمائیلی دی .[تزوجوا ولاتطلقوا] یعنی نکاح کوئ.اوطلاق مه ورکوئ.اود طلاق اباحت د ښځي نه د ځان خلاصولود اړتیا په وجه دي.اودا اړتیا په یوطلاق سره پوره کیږی .نو دوهم طلاق مباح نشو.

**وَلَنَا قَوْلُهُ عليه السلام فِي حَدِيثِ ابْنِ عُمَرَ** رضی الله عنهما او زموږ دلیل دَ حضور علیه السلام ارشاد دي په حدیث دَ ابن عمر رضی الله عنه کي **إِنَّ مِنَ السُّنَّةِ** چي سنت دا دی **أَنْ تَسْتَقْبِلَ الطُّهْرَاسْتِقْبَالًا فَتُطَلِّقَهَا لِكُلِّ قُرْءٍ تَطْلِيقَةً**(۱)چه انتظار اوکړی دَ طهر بیا ورسره په هر طهر کي یو طلاق ورکړي

**تشریح:-دلائل الاحناف** رحمهم الله ۞ ①زموږدلیل دحضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما حدیث دي.دوی فرمائی .چه ماخپلي بی بی ته په حالت حیض کي یوطلاق ورکړلو.اوبیا مي اراده اوکړله.چه په حالت د طهر کي ورته دوي [دوه] طلاقه ورکړم.ددي خبري پته نبی ﷺ ته اولګیدله.نونبی ﷺ راته اوفرمائیل.اي ابن عمر! الله تعالی تاته ددي طریقي حکم نه دي کړي.تاسنت طریقه پریخودله.سنت دا دي.چه تاانتظارکړي وو.تردي چي په طهرکي دي طلاق ورکړي وو.تاسنت طریقه پریخودله.بیا راته نبی ﷺ حکم اوکړلو.نوماورته رجوع اوکړه.بیا ئي راته حکم اوکړلو. چي کله طهر راشي .نوبیا ورته طلاق ورکړه.اویا ئي ځان سره اوساته.دوی فرمائی .ماعرض اوکړلو.یارسول الله که زه دي ته دري طلاقه ورکړم.نوآیا زما لپاره دي ته رجوع کول حلال دی ؟نونبی ﷺ اوفرمائیل.نه هغه خوبائینه شوه.اوګناه شوه.دا حدیث دارقطنی نقل کړي دي.ددي نه معلومه شوه.چه جلا جلا دري طلاقه ورکول سنت دی

**وَلِأَنَّ الْحُكْمَ يُدَارُعَلَى دَلِيلِ الْحَاجَةِ** ځکه چي حکم دائر کړي شوي دي په دلیل دَ حاجت دَ طلاقو **وَهُوَالْإِقْدَامُ عَلَى الطَّلَاقِ فِي زَمَانِ تَجَدُّدِ الرَّغْبَةِ وَهُوَالطُّهْرُ** او او دغه اقدام کول دی په طلاقو په زمانه دَ نوی کیدو دَ رغبت کي او دغه طهر دي **فَالْحَاجَةُ كَالْمُتَكَرِّرَةِ نَظَرًا إِلَى دَلِيلِهَا** نو حاجت مثل متکرره شو دَ دلیل دَ حاجت پیش نظر

**حل اللغة** ① **يدار**:ګرځولي شی ② **تجدد**:نوي کیدل ③ **الاقدام**: وړاندي والي کول ④ **المتكرر**:باربار کیدونکي]

**تشریح:-** عقلی دلیل دا دي.(چه طلاق خوفي نفسه قبیح څیزدي.ځکه چي عقد د نکاح په کي کټ کولي شی .خوبیا هم دا جائزشو.ځکه) چي طلاق ته چي کوم حاجت پیښیږی .هغه باطنی څیزدي.(بعضي وخت د طبیعتونواختلاف وی .یابل څه وجه وی .چه دهغي ښکاره کول سړي مناسب نه ګڼړی )اوپه هغي باندي

(۱) من حديث ابن عمر رضی الله تعالى عنهما أخرجه الدارقطنی فی سننه ( ٤ / ٣١) رقم ٨٤).



پوهیدل ګران وی .نوحکم به ددي په دلیل لګولي شي . (یعنی چي کله د طلاق ورکولوته حاجت پیښ شی .اوپه دغه حاجت پیښیدوباندي دلیل هم څرګندشی ) او دلیل (دحاجت دطلاق) نوي والي د رغبت دي یعنی د طهرپه زمانه کي د طلاق ورکولواقدام (دا د ددي خبري دلیل دي.چه دده طلاق ورکولوته حاجت پیښ شوي دي.ځکه چي په طهرکي د ښځي سره جماع کول هم جائزوی .دغه ډول طبیعت تري هم نفرت نه کوی خوددي باوجود چي دي په طهرکي ښځي ته طلاق ورکوی . نو معلومیږی .چه داسي څه خبره په مینځ کي شته.چه دهغي د امله دي مجبوره دي.چه ښځي ته طلاق ورکړی )اوکله چي هم د حاجت په دلیل کي تکرار راشي .نولکه چي د طلاق تکرارته به هم حاجت وی .اوچه د طلاق حاجت پریخودوکي تکرار وی .نوپه طلاق کي تکرار به هم مباح وی .نوځکه زموږ رائي ده.چه جلا جلا په دري طهرونوکي دري طلاقونه ورکول مباح دی بدعت نه دي.

**ثُمَّ قِيلَ: الْأَوْلَى أَنْ يُؤَخِّرَ الْإِيقَاعَ إِلَى آخِرِ الطُّهْرِ احْتِرَازًا عَنْ تَطْوِيلِ الْعِدَّةِ** بیا وئیلي شوي دی غوره دا ده روستو کړی واقع کیدل دَ طلاقو اخر دَ طهر ته دَ وجه دَ احتراز دَ اوږیدو دَ عدت نه **وَالْأَظْهَرُ أَنْ يُطَلِّقَهَا كَمَا طَهُرَتْ** او اظهره دا ده چي دي لره طلاق ور کړی ځنکه چي پاکه شی **لِأَنَّهُ لَوْ أَخَّرَ** ځکه چي که دي ئې روستو کړی **رُبَّمَا يُجَامِعُهَا، وَمِنْ قَصْدِهِ التَّطْلِيقُ** نو ډیر ځله به دَ دي سره جماع او کړی حال دا چي اراده ئې دَ طلاقو ده **فَيُبْتَلَى بِالْإِيقَاعِ عَقِيبَ الْوِقَاعِ** نو دي به مبتلی شی دَ جماع نه روسته په طلاقو واقع کاوه کي

**حل اللغة** ① **احتراز**:بچ کیدل ② **تطويل**:اوږدول ③ **الايقاع**: واقع کول ④ عقیب روسته ]

**تشریح:-المذهبان في وقت طلاق السنة**۞په طلاق سنی کي دمشائخو رحمهم الله اختلاف دي.چه د طهر په اول کي طلاق ورکول غوره دی اوکه په آخرکښي.① دبعضو رائي ده.چه د طهرپه اول کي طلاق ورکول غوره دی .ځکه چي په دي صورت کي به ښځه د اوږد عدت نه بچ شی .هغه داسي چي کله ورته دي د طهرپه آخرکي طلاق ورکړی .نوښځه به دوي [دوه] طهره اودري حیضه عدت تیروی .اوچه د طهرپه اول کي ورته طلاق ورکړی .نودري طهره اودري حیضه عدت به تیروی .اوښکاره خبره ده.چه په اولنی صورت کي عدت کم دي.نودښځي لپاره آسانتیا ده.② اودبعضو رائي دا ده.چه ځنګه دحیض نه پاکه شی .نود طلاق ورکول غوره دی .ځکه که ده اراده د طلاق ورکولوکړي وی .نوچه دي ورته د طهرپه اول کي طلاق ورنکړی . کیداي شی .چه په دغه طهرکي ورسره جماع اوکړی .اوچونکه ده خو د طلاق ورکولواراده کړي ده.نوچه دَ جماع نه روسته ورته د دغه طهرپه آخرکي طلاق ورکړی .نودا طلاق د سنت نه خلاف دي.ځکه دي ورته د طهرپه اول کي طلاق ورکړی .والله اعلم بالصواب.

(ددي نه یوه مسئله زما په قاصرذهن کي راغله.هغه دا که چرته د خاوند د طلاق ورکولوکلکه اراده نه وی .بلکه هسي وقتی طوردحالاتونه متاثره شوي وی .اود طلاق اراده ئي پیښه شوي وی .لکه نن صبا چي اکثرناپوهه خلګ د وقتی حالاتو نه متاثره شی .اوښځي ته طلاق ورکړی .نوپه داسي صورت کي د طهرپه آخرکي طلاق ورکول پکار دی . کیداي شی .چه د طهرپه آخرکي دده د طلاق ورکولواراده ختمه شی .نوهډود رجوع کولواوتجدید نکاح اړتیا به پیښ نشی .ازاحقرشاه فیصل)

## طلاق بدعت

**وَطَلَاقُ الْبِدْعَةِ أَنْ يُطَلِّقَهَا ثَلَاثًا بِكَلِمَةٍ وَاحِدَةٍ** او طلاق بدعت دادی چي طلاق ور کړی ښځي ته دري په یو لفظ سره **أَوْثَلَاثًا فِي طُهْرٍ وَاحِدٍ** یا دري په یو طهر کي **فَإِذَا فَعَلَ ذَلِكَ وَقَعَ الطَّلَاقُ** کله چي ئې دا او کړل نو طلاق به واقع شي . **وَكَانَ عَاصِيًا** او وی به ګناه ګار

تشریح:- الطلاق البدعی والاختلاف في حکمه ① طلاق بدعت دا دې.چه په یوخل درې طلاقه ورکړي یا په یو طهر کې درې طلاقه ورکړي .زموږ په نیزدا طلاق ورکول حرام دی .خوکه چا ورکړلو.نوطلاق واقع کیږي اوحرمت غلیظه پرې ثابتیږي .اوطلاق ورکونکي ګناهګار دې.

وَقَالَ الشَّافِعِي رَحِمَهُ اللّٰهُ: كُلُّ الطَّلَاقِ مُبَاحٌ امام شافعي رحمه الله فرمائي. چې هر طلاق مباح دی لِأَنَّهُ تَصَرُّفٌ مَشْرُوعٌ حَتّٰى يُسْتَفَادَ بِهِ الْحُكْمُ ځکه چې دغه تصرف مشروع دې تر دې چې دَ دینه حکم مستفاد کیږي وَالْمَشْرُوعِيَّةُ لَا تُجَامِعُ الْحَظْرَ او مشروعیت دَ ممانعت سره نه جمع کیږي

تشریح:- اوامام شافعي رحمه الله فرمائي .چه هرطلاق مباح دې. دلیل دا دې.چه طلاق یوامرمشروع دې.یعنی شریعت د طلاق ورکولواجازت ورکړي دې.اوبه دې باندې ترتب د اثرشرعی کیږي .اوپه کوم څیزچه ترتب د اثرشرعی کیږي .هغې ته امرمشروع وائی .نوطلاق امرمشروع شو.اوچه کوم څیز مشروع وی .هغه ممنوع نه وی .ځکه چې ممنوعیت د مشروعیت سره نه جمع کیږي. چې وقوع د طلاق ده هغه هم

بِخِلَافِ الطَّلَاقِ فِي حَالَةِ الْحَيْضِ په خلاف دَ طلاقو په حالت دَ حیض کې لِأَنَّ الْمُحَرَّمَ تَطْوِيلُ الْعِدَّةِ عَلَيْهَا لَا الطَّلَاقُ ځکه چې محرم اوږدیدل دَ عدت دی په ښځه نه چې طلاق

تشریح:-الاعتراض علی الشافعي رحمه الله په [بخلاف الطلاق] په دې سره د یواعتراض ځواب کوی .اعتراض دا دې.چه دامام شافعي رحمه الله دا وینا چې امرمشروع اوممنوع نشی جمع کیدې.حالانکه په حالت د حیض کې طلاق ورکول حرام دی .خوکه چا ورکړلو.نوواقع کیږي .په دې صورت کې امرمشروع اوممنوع دواړه جمع شوی دی .

الجواب نودامام شافعي د اړخه به ځواب دا وی .چه په حالت د حیض کې نفس طلاق حرام نه دې.بلکه دا ممانعت په ښځه د عدت د اوږدوالی د امله راغلې دې.که په حالت د حیض کې نې طلاق ورکړلو.نوپه اتفاق دعالمانو رحمهم الله دا حیض په عدت کې نشی شمارلې.نوپه ښځه باندې عدت اوږدیږي .دغه ډول په داسې طهرکې فی نفسه طلاق ورکول ممنوع نه دی .بلکه ممانعت ددې امله دې. چې په دې سره د عدت معامله مشتبه کیږي .ځکه چې موږ ته معلومه نه ده.چه دا حامله ده.(یعنی کیداې شی چې د دغه جماع نه حامله شوې وی ) چې په وضع د حمل عدت پوره کړي .اوکه حامله نه ده.چه زموږ په نیزبه درې حیضوسره عدت پوره کړي .اودامام شافعي رحمه الله په نیزبه طهرونوسره عدت پوره کړي .ددې ځواب نه روسته په شوافعو رحمهم الله باندې اعتراض نه واقع کیږي .

وَلَنَا أَنَّ الْأَصْلَ فِي الطَّلَاقِ هُوَ الْحَظْرُ زمونږدلیل دا دې چې اصل په طلاقو کې ممانعت دې لِمَا فِيهِ مِنْ قَطْعِ النِّكَاحِ الَّذِي تَعَلَّقَتْ بِهِ الْمَصَالِحُ الدِّينِيَّةُ وَالدُّنْيَوِيَّةُ ځکه چې په دې کې دَ هغې نکاح قطع کول دی دَ کوم سره چې دینی او دنیوی مصالح متعلق دی وَالْإِبَاحَةُ لِلْحَاجَةِ إِلَى الْخَلَاصِ او اباحت دَ اړتیا دَ خلاصی په وجه دې وَلَا حَاجَةَ إِلَى الْجَمْعِ بَيْنَ الثَّلَاثِ او دَ درې جمع کاوه څه ضرورت

حل اللغة ① الحظر:ممانعت ② المصالح:جمع د مصلحت،هغه عمل چې په هغې کې خیګړه وی ]

تشریح:-دلیل الاحناف اوزمونږدلیل دا دې.چه په طلاق کې اصل ممانعت دې.ځکه چې په طلاق سره هغه ... [illegible] دینی اودنیاوی مصلحتونه تړلی شوی دی .دینی مصلحت خو دا دې.چه ... [illegible] شی .اوزناداسې یوقبیح فعل دې.چه په ټولودینونوکې حرام ګرځولې شوې ... [illegible] دی .چه د ښځې لپاره د سکنی اونفقې بندوبست د خاوند په ذمه شی .او ... [illegible] داسې نورډیرمصلحت ... [illegible] دی .نوچه دې ته ګورې پکاردا وه.چه طلاق په شریعت کې ... [illegible] د خان ... [illegible] اړتیا طلاق مباح کړې شو.اود درې طلاقوجمع کولوڅه



اړتیا نشته.ځکه چې دا مقصود د دې نه په کم عدد سره هم حاصلیږي .نوځکه زموږ په نیز د درې طلاقو جمع کول حرام دی .

وَهِيَ فِي الْمُفَرَّقِ عَلَى الْأَطْهَارِ ثَابِتَةٌ نَظَرًا إِلَى دَلِيلِهَا په طهرو نومتفرق کاوه کې ثابت دې دَ دلیل دَ حاجت پیش نظر وَالْحَاجَةُ فِي نَفْسِهَا بَاقِيَةٌ او حاجت بذات خود پاته دې فَأَمْكَنَ عَكْسُ الدَّلِيلِ عَلَيْهَا نو ممکن دی دلیل لره په حاجت تصور کول

تشریح:-السوال التقدیری وځوابه دا عبارت د یوسوال ځواب دې.سوال دا دې.چه لکه څنګه درې طلاقو ته اړتیا نشته.دغه ډول په درې طهرونوکې درې طلاقونوورکولوته هم څه اړتیا نشته.ځکه چې په یوطهرکې په درې طلاقو ورکولوسره مقصود حاصلیږي .نوپکارده.چه دا هم حرام وی .حالانکه احناف په دریو طهرونوکې درې طلاقونو ته طلاق سنت وائی.ددې ځواب دا دې.چه په درې طهرونوکې طلاق ورکولوته اړتیا شته.په نظرکولوسره دلیل ته.اوهغه دلیل په رغبت په زمانه کې چې طهردې په طلاق باندې اقدام کول دی .

السوال التقدیری الثانی [والحاجة في نفسها باقية] په دې سره هم د یواعتراض ځواب دې.اعتراض دا دې.چه دلیل حاجت د حاجت قائم مقام په هغه وخت کې ګرځی .چه د حاجت وجود متصور وی .اودلته د حاجت وجود متصور نه دې.ځکه چې کله اول طهرکې یوطلاق واقع شی .اونکاح ختمه شی .نواوس د نکاح د ذمه وارئ نه د خلاصیدو څه حاجت پاتې شو.اوهرکله چې د طلاق حاجت پاته پاتې نشو.نودلیل حاجت به هم ددې قائم مقام نه وی .

الجواب حاجت د طلاق په خپله پاته دې.نودلیل حاجت متصور کیدل هم ممکن دی .د طلاق دحاجت پاته پاتې کیدو دلیل دا دې.چه بعضې وخت ښځه بدکرداره اوبداخلاقه وی .اوسړې د رجوع یا تجدیدنکاح په ذریعه د تدارك د امکان دروازه بندول غواړی .ددې حاجت پوره کاوه لپاره شریعت ده ته په دوهم اودریم طهرکښې د یو یوطلاق ورکولواجازت ورکړې دې.چه د ښځې لپاره حرمت غلیظه ثابت شی .اود پښیمانتیا په وخت کې د تدارك امکان پاته پاتې نشی .

الاعتراض والجواب خوپه دې باندې یواعتراض کیدې شی .چه د دلیل تقاضا دا وه.چه په یوه کلمه درې طلاقه جائز وو.حالانکه تاسودې ته حرام وائې.ځواب دا دې.چه دا دلیل متعارض شو د نص سره.د نص نه مراد یا حدیث د ابن عمررضی الله عنهما دې اویا آیت د [الطلاق مرتان].کوم چې په متفرق طور په طلاق باندې دلالت کوی .او ښکاره ده چې دلیل ته په نص ترجیح نشی ورکولې.

وَالْمَشْرُوعِيَّةُ فِي ذَاتِهِ مِنْ حَيْثُ إِنَّهُ إِزَالَةُ الرِّقِّ لَا تُنَافِي الْحَظْرَ لِمَعْنًى فِي غَيْرِهِ او مشروعیت لذاته په دې حیثیت چې دغه لرې کول دَ رقیت دی منافی دَ ممانعت لغیره نه دې وَهُوَ مَا ذَكَرْنَاهُ او دغه هغه معنی ده کومه چې مونږ ذکر کړه وَكَذَا إِيقَاعُ الثِّنْتَيْنِ فِي طُهْرٍ وَاحِدٍ بِدْعَةٌ لِمَا قُلْنَا دَغسې په طهر واحد کې دوې [دوه] طلاق واقع کول بدعت دې په دې وجه چې موږ او وې

حل اللغة ① لاتنافی:منافی نه دې ② الرق: خالصه غلامی ③ الحظر:حرمت،ممانعت ④ ایقاع: واقع کول]

تشریح:- الجواب عن دلیل الشافعي رحمه الله پدا عبارت دامام شافعي رحمه الله د دلیل [المشروعية لا تجامع الحظر] ځواب دې.د ځواب حاصل دا دې.چه مشروع لذاته د ممنوع لذاته سره بیشکه نه جمع کیږي . خو مشروع لذاته دممنوع لغیره سره جمع کیداې شی .لکه په غصب شوې مځکه کې لمونځ کول او په وخت د سعی د جمعې د لمانځه کښې بیع کول.ګوره نفس لمونځ اوبیع مشروع ده.خوپه غصب شوې مځکه کې د کاوه په وجه اود سعی الی الجمعه په وجه ممنوع لغیره ده.دغه ډول په ذکرشوې مسئله کې نفس طلاق مشروع دې.خونکاح د مصالحو د فوت کیدو په وجه ممنوع لغیره وی .

صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی .چه په یوطهرکې دوې [دوه] طلاقه ورکول هم بدعت دې.ځکه چې جمع کولوته اړتیا نشته.

**وَاخْتَلَفَتِ الرِّوَايَةُ فِي الْوَاحِدَةِ الْبَائِنَةِ** او په يوه بائنه كي روايت مختلف دي ..**قَالَ فِي الْأَصْلِ: إِنَّهُ أَخْطَأَ السُّنَّةَ** امام محمد رحمه الله په مبسوط كي وئيلى دى چې دا دَ سنتو نه تجاوز دې نشته **لِأَنَّهُ لَا حَاجَةَ إِلَى إِثْبَاتِ صِفَةٍ زَائِدَةٍ فِي الْخَلَاصِ** ځكه چې په خلاصى موندو كي دَ زيات صفت ثابتولو څه ارتيا نشته **وَهِيَ الْبَيْنُونَةُ** او دغه صفت بينونت دي

**تشريح:- الروايتان في حكم الطلاق البائن**۞كه يوكس خپلې ښځې ته په داسې طهركي طلاق بائن وركړلو.چه ده ورسره په هغې كي جماع نه وى كړې.نوپه دې اړه كي زموږ د عالمانو رحمهم الله نه مختلف روايات منقول دى.
① امام محمد رحمه الله په مبسوط كي فرمائيلى دى .چه دا بدعت دې.ځكه چې د ښځې نه د ځان خلاصولو لپاره بينونت چې يوزياتى صفت دې.ددې د ثابت كولوڅه ضرورت نشته.

**وَفِي الزِّيَادَاتِ أَنَّهُ لَا يُكْرَهُ لِلْحَاجَةِ إِلَى الْخَلَاصِ نَاجِزًا** او دَ زيادات په روايت كي دا ده چې مكر وه نه دى دَ فورى خلاصى موندو دَ ارتيا په وجه سره،

**تشريح:-** اود زيادات په روايت كي دى .چه په يوطلاق بائن كي څه كراهت نشته.ځكه چې كله كله د دستى ځان خلاصولو حاجت پيښيږى .او دستى ځان خلاصول د بينونت د صفت نه بغيرنشى حاصليدې.نوځكه د صفت زائده كي څه كراهت نشته.

**الاعتراض على الهداية**۞دصاحب هدايه رحمه الله لپاره مناسب وه.چه دا ئې فرمائيلى وو.[في زيادات الزيادات] ځكه چې امام محمد رحمه الله دا مسئله په زيادات الزيادات كي ذكر كړې ده.په زيادات كي نه.

**الجواب**۞ځواب ممكن ده.① چه ممكن ده دا د كاتب نه سهو شوې وى .② اودا هم احتمال شته.چه مصنف د هدايه رحمه الله هم دا فرمائيلى وى .ځكه چې زيادات الزيادات هم د زيادات تتمه ده.نود زيادات مسئله به هم د زيادات مسئله ګڼلې شى .(عينى شرح هدايه) .

په سنت طلاق كي د مذاهبو لنډيز دا شوه.① چه زموږ په نيز په طلاق سنت كي تفريق اووخت دواړه معتبر دى .② دامام مالك رحمه الله په نيزيوطلاق اووخت معتبردې.③ اودامام شافعى رحمه الله په نيزصرف وخت معتبر دې.د عدد څه اعتبار نشته.والله اعلم بالصواب.

### په طلاق كي د سنت تقسيم

**وَالسُّنَّةُ فِي الطَّلَاقِ مِنْ وَجْهَيْنِ** او سنت په طلاق كي په دوې [دوه] طريقې سره دى **سُنَّةٌ فِي الْوَقْتِ** سنت فى الوقت **وَسُنَّةٌ فِي الْعَدَدِ** او سنت فى العدد **فَالسُّنَّةُ فِي الْعَدَدِ يَسْتَوِي فِيهَا الْمَدْخُولُ بِهَا وَغَيْرُ الْمَدْخُولِ بِهَا** په سنت فى العدد كي خومدخول بها او غير مدخول بها برابر دى **وَقَدْ ذَكَرْنَاهَا** او موږ دا ذكر كړې دى

**تشريح:- ويش الطلاق السنة الى قسمين**۞مصنف رحمه الله د سنت طلاق ويش كوى.چه سنت طلاق په دوې [دوه] قسمه دې.① سنت في العدد② اوسنت في الوقت.① سنت في العدد دا دې.چه په يوطهركي ورته يوطلاق وركړى .لكه څنګه چې د باب په اول كي تيرشوى دى .په دې كي مدخول بها اوغيرمدخول بها دواړه برابر دى .

**وَالسُّنَّةُ فِي الْوَقْتِ تَثْبُتُ فِي الْمَدْخُولِ بِهَا خَاصَّةً** او سنت فى الوقت په خاص طور سره دَ مدخول بها په حق كي ثابت دي **وَهُوَ أَنْ يُطَلِّقَهَا فِي طُهْرٍ لَمْ يُجَامِعْهَا فِيهِ** او هغه دا ده چې ښځې لره په داسې طهر كي طلاق وركړى چې جماع ئې پكي ور سره نه وى كړى فيه **لِأَنَّ الْمُرَاعَى دَلِيلُ الْحَاجَةِ** ځكه ملحوظ دليل دَ حاجت دي **وَهُوَ الْإِقْدَامُ عَلَى الطَّلَاقِ فِي زَمَانِ تَجَدُّدِ الرَّغْبَةِ** او هغه اقدام كول دى په طلاقو په زمانه دَ تجدد دَ رغبت كي **وَهُوَ الطُّهْرُ الْخَالِي عَنِ الْجِمَاعِ** او هغه طهر دې چې خالى وى دَ جماع نه ،**أَمَّا زَمَانُ الْحَيْضِ** پاتې شوه زمانه دَ حيض



**فَزَمَانُ النُّفْرَةِ** نو دغه دَ نفرت زمانه ده **وَبِالْجِمَاعِ مَرَّةً فِي الطُّهْرِ تَفْتُرُ الرَّغْبَةُ** او په طهر كي په يو وار جماع كاوه سره رغبت سستيږى

**حل اللغة:** ① **تجدد**:نوې كيدل ② **المراعى**:لحاظ ساتلې شوې خيال ساتلې شوې ③ **الرغبة**: شوق،مينه ④ **تفتر**:سستيږى ]

**تشريح:-** اوسنت في الوقت خاص كرد مدخول بها په حق كي ثابتيږى .سنت في الوقت دا دې.چه سړې ښځې ته په داسې طهركي طلاق وركړى .چه هغه د جماع نه خالى وى .

**دليله**۞دليـل دا دې.چه د طلاق مشروعيت د حاجت د امله دې.اوخيال به ساتلې شى د دليل حاجت ،اودليل دحاجت د تجدد اورغبت په زمانه كي طلاق وركول دى .اود تجدد اورغبت وخت هغه طهر وى .كوم چې د جماع نه خالى وى .اوپاتې شوه د حيض زمانه،نودا د نفرت زمانه ده.اوپه طهركي په يوځل جماع كولوسره رغبت كميږى .نوپه حالت د حيض اوهغه طهرچه جماع په كي شوې وى .دليل دحاجت موجود نه دې.دې لپاره چې دا قائم مقام د حاجت اوګرځولې شى .اوطلاق مشروع اوګرځولې شى .نوځكه موږ وايو.چه سنت في الوقت صرف دا دې.چه طلاق په داسې طهركي وركړې شى .چه هغه د جماع نه خالى وى .اوپه حالت د حيض كي هم طلاق نه وى وركړې شوې.

**وَغَيْرُ الْمَدْخُولِ بِهَا يُطَلِّقُهَا فِي حَالَةِ الطُّهْرِ وَالْحَيْضِ** او غير مدخول بها له دې طلاق ور كوى په حالت دَ طهر كي او په حالت د حيض كي

**تشريح:- المذهبان في طلاق غيرالمدخول بها في الحيض**۞ ①پاتې شوه غيرمدخول بها نوهغې ته په حالت دطهراوحيض دواړو كي طلاق وركولې شى

**خِلَافًا لِزُفَرَ رَحِمَهُ اللَّهُ هُوَ يَقِيسُهَا عَلَى الْمَدْخُولِ بِهَا** په خلاف دَ امام زفر نه چې هغه ئې په مدخول بها باندې قياس كوى

**تشريح:-** اوامام زفر رحمه الله فرمائى .چه په حالت د حيض كښې ورته طلاق وركول هم مكروه تحريمى دى .حضرت امام زفر رحمه الله غيرمدخول بها په مدخول بها باندې قياس كوى .

**وَلَنَا أَنَّ الرَّغْبَةَ فِي غَيْرِ الْمَدْخُولِ بِهَا صَادِقَةٌ لَا تَقِلُّ بِالْحَيْضِ مَا لَمْ يَحْصُلْ مَقْصُودُهُ مِنْهَا** زموږ دليل دا دې چې په غير مدخول بها كي رغبت پوره و دَ حيض په وجه نه كميږى تر څو چې دَ ده مقصود د دينه حاصل نه وى **وَفِي الْمَدْخُولِ بِهَا تَتَجَدَّدُ بِالطُّهْرِ** او په مدخول بها كي دَ طهر په وجه رغبت نوې كيږى .

**تشريح:- دليل جمهورالاحناف**۞زمونږدليل دا دې.چه په غيرمدخول بها كي رغبت ښه پوره وى .دحيض په وجه نه كميږى .ترڅوچه ترې مقصود حاصل كړې شوې نه وى .نوپه حالت دحيض كي غيرمدخول بها ته طلاق وركول به د حاجت د امله وى .د هغې نه د نفرت په وجه به نه وى .اوپه مدخول بها كي د طهرد امله ځكه چې دحيض نه روسته طهرراشى .نود سړى رغبت اوشوق تازه شى .نوځكه هغه طهرچه هغه د جماع نه خالى وى .په هغې كي مدخول بها ته طلاق وركول مباح دى .

**الاشكال**۞دلته يواشكال دې.هغه دا چې مصنف رحمه الله فرمائى .چه غيرمدخول بها ته په حالت د حيض كي طلاق وركول صحيح دى .حالانكه په حديث د ابن عمررضى الله عنهما كي دى .چه [إنما السنة أن تستقبل الطهر] يعنى سنت دا دى .چه د طهرانتظاراوكړې.اودا حديث دخپل اطلاق په وجه مدخول بها اوغيرمدخول بها تولوته ګډ دې.

**الجواب**۞ځواب هم په دې حديث كي يوروايت دې.چه [فتلك العدة التى أمر الله تعالى أن يطلق لها النساء] يعنى

دا هغه عدت دې.چه په دې باندې الله تعالى حکم کړې دې.چه په دې وخت کې ښځو ته طلاق ورکړې شي .اوعدت صرف د مدخول بها لپاره وی .دغیرمدخول بها لپاره نه وی .نومعلومه شوه.چه دا حدیث صرف د مدخول بها سره خاص دې.ددې حدیث په وجه اعتراض نشي کولې.

## د حیض نه راتلوپه صورت کې د سنت طلاق طریقه

قَالَ وَإِذَا كَانَتِ الْمَرْأَةُ لَا تَحِيضُ مِنْ صِغَرٍ أَوْ كِبَرٍ،کله چې ښځې ته حیض نه راتلو دَ ورکوټوالی یا دَ زوړوالی په وجه فَأَرَادَ أَنْ يُطَلِّقَهَا ثَلَاثًا لِلسُّنَّةِ او دې له درې طلاق ورکول او غواړ دَ سنت په وخت کې طَلَّقَهَا وَاحِدَةً نو یو طلاق دې ورکړی فَإِذَا مَضَى شَهْرٌ طَلَّقَهَا أُخْرَى نو کله چې میاشت تیره شي نو بل دې ورکړی لِأَنَّ الشَّهْرَ فِي حَقِّهَا قَائِمٌ مَقَامَ الْحَيْضِ ځکه چې میاشت دَ دوی په حق کې دَ حیض قائمقام ده قَالَ اللهُ تَعَالَى ارشاد دَ باری دې وَاللَّائِي يَئِسْنَ مِنَ الْمَحِيضِ أَنْ قَالَ {وَاللَّائِي لَمْ يَحِضْنَ}او هغه ښځې چې مایوسه شوې دَ حیض نه تر دې چې فرمائی او هغه ښځې کوموته چې حیض نه راځي

**حل اللغة:** ① يئسن:هغه زنانه چې نا امیده شوی وی ]

**تشریح:- عدة عادم الحیض**◉مسئله دا ده.که د یوې ښځې د ماشوموالی یا د زوړوالی د امله حیض نه راځي .اوددې خاوند په سنت طریقه دې ته طلاق ورکول غواړي .نودرې طلاقه دې په درې میاشتوکې ورکړي .

د حیض کال (یعنی چې په کوم کال حیض پیل کیږي ) ①دمختارمذهب په بناء نهم کال دې.② اوچا ونیلی دی اتم کال دې ③اوچا اووم کال ونیلې دې.اوسن ایاس (یعنی د کوم عمر کې چې حیض بندیږي .اوبیا نه راځي )د اظهرقول په بناء ۵۵ کاله دی .(فتح القدیر،کفایه)

**دلیله**◉دلیل دا دې.چه هره یوه میاشت د صغیرې اوکبیرې دواړو په حق کې د حیض قائم مقام ده.ځکه چې الله تعالى فرمائیلی دی ((وَاللَّائِي يَئِسْنَ مِنَ الْمَحِيضِ مِنْ نِسَائِكُمْ إِنِ ارْتَبْتُمْ فَعِدَّتُهُنَّ ثَلَاثَةُ أَشْهُرٍ وَاللَّائِي لَمْ يَحِضْنَ)) مطلب دا دې.که په تاسوکې ددې دواړه قسم ښځود عدت حکم مشتبه شي . نود دوی حکم دا دې.چه درې میاشتې دې تیرې کړي .ددې آیت نه معلومه شوه.چه د ښځو حیض راځي . نو درې حیض نې عدت دې.اوکه حیض نه وی .نودرې میاشتې به نې عدت وی .نومعلومه شوه.چه میاشت د حیض قائم مقام ده.

وَالْإِقَامَةُ فِي حَقِّ الْحَيْضِ خَاصَّةً حَتَّى يُقَدَّرَ الْاِسْتِبْرَاءُ فِي حَقِّهَا بِالشَّهْرِ او قائمقام کول په حیض کې دی خاصکر تر دې چې دَ استبراء اندازه دَ دې دواړو په حق کې به په میاشتې وی وَهُوَ بِالْحَيْضِ لَا بِالطُّهْرِ او حال دا دې چې استبراء په حیض سره وی نه چې په طهر سره

**حل اللغة:** ① الاستبراء:د حمل نه د بچی خالی والې]

**تشریح:- المذهبان في الذي يقوم الشهر مقامه**◉ ① په دې عبارت سره د احنافو ﷭ مختارمذهب ذکرکوی .چه میاشت خاص کرد حیض قائم مقام ده.د طهراوحیض دواړو قائم مقام نه ده.لکه څنګه چې د بعضې عالمانو ﷭ رائې ده.② اوشمس الائمه﷫ فرمائیلی دی .چه دغیرذوات الحیض په حق کې میاشت د حیض په مرتبه کې ده.اود ذوات الحیض په حق کې د طهرپه مرتبه کې ده.بلکه داسې نه ده.بلکه د دوی په حق کې هم د حیض په درجه کې ده.

**دلیل المذهب المختار**◉د مختارمذهب دلیل دا دې.که د یوې وینزې د ورکوټوالی یا زوړوالی د امله حیض نه راځي .که د انتقال ملك وغیره په وجه ددې د رحم استبراء مقصود وی .نودا به د وینزې په حق کې د میاشتې په حساب سره کولې شي .حالانکه استبراء د حیض په ذریعه کولې شي .د طهر په ذریعه نه.(یعنی چې حیض راشي .نومعلومه شي .چه په رحم کې څه نشته)نوددې نه هم ثابته شوه.چه میاشت صرف د حیض قائم مقام ده.د طهرنه ده.



**الاشکال الاول**◉په دې تقریرباندې یواشکال کیږي .هغه دا چې هرکله میاشت د حیض قائم مقام شوه.نوچه په کومه میاشت کې هم طلاق ورکړي .نودا داسې شوه.لکه چې په حیض کې نې طلاق ورکړې وی .اوپه حیض کې خو طلاق ورکول حرام دی .

**الجواب عنه** ◉ددې خواب دا دې.چه دا موده( میاشت) په حقیقت کې طهردې.لیکن دحیض قائم مقام ده.اوکوم څیزچه د بل څیزقائم مقام وی .نودا ممکن نه ده.من کل الوجوه دَ هغې په معنی کې وی .ځکه چې بیا خوبه عین هغه څیزشي .قائم مقام به نه وی .نود میاشت چې دحیض قائم مقام ده.صرف د عدت تیرولواو استبراء د رحم په اعتبارسره نه څه د بلې امله نه.نواوس دا اعتراض نه واقع کیږي .چه هرکله میاشت د حیض قائم شوه.نوپه میاشت کښې طلاق ورکول لکه په حیض کې طلاق ورکول دی .ځکه چې په طلاق واقع کیدوکې میاشت د حیض قائم مقام نه ده.

**الاشکال الثانی**◉ دوهم اعتراض دا دې.چه هرکله میاشت د حیض قائم مقام شوه.نوبیا درې درې میاشتوته څه اړتیا وو.بلکه پکاردا وه.چه د حیض اکثره موده لس ورځې دی .چه په یومیاشت کې عدت پوره کیدو. حالانکه داسې نه ده.ځکه چې په میاشت کې درې حیضه برابریدې شي .

**الجواب عنه** ◉د دې خواب دا دې.چه شریعت چې میاشت د حیض قائم مقام ګرځولې ده.چه ددې په ذریعه عدت تیرکړې شي .اوعدت په عامه توګه په درې میاشتوکې تیریږي .(ځکه چې په درې میاشتوکې درې حیضه راځي ) نوځکه میاشت دهغه حیض قائم مقام کرځولې شوې ده.په کوموکې چې عدت موجود وی .د حیض د مودې قائم مقام نې نه دې کرځولې.چه په یوه میاشت اکتفاء اوکړې شي .(لکه څنګه چې معترض وائی )

نوهرکله چې دا ثابته شوه.چه میاشت د حیض قائم مقام ده.نوکوم طلاق چې د میاشت په پیل کې واقع شوې وی .نوهغه میاشتې کومې چې د حیض قائم مقام دی .دهغې اعتباربه د درې میاشتوپه تیریدو سره کولې شي .که میاشت د یوکم دیرشو وی اوکه د پوره دیرشو.اوکه د طلاق واقع کیدل د میاشت په مینځ کې وی .نوچه درې طلاق جلا جلا ورکړي .په دې کې به د میاشتواعتبارپه ورځوسره کولې شي .د میاشت په اعتبار سره نه.(دا متفق علیه ده)تفصیل دا دې.چه د سنت طلاق په صورت کې دې دوهم طلاق د دیرشو ورځوپه پوره کیدو یعنی په یودیرشمه ورځ ورکړي .ځکه.چې هره میاشت د دیرشو معتبر وی . نوچه په کومه میاشت کې دیرش ورځې پوره کیږي .نوکه په هم هغه ورځ نې طلاق ورکړلو.نوپه یوه میاشت کې به د دوو طلاقو جمع کونکې شي .

ثُمَّ إِنْ كَانَ الطَّلَاقُ فِي أَوَّلِ الشَّهْرِ تُعْتَبَرُ الشُّهُورُ بِالْأَهِلَّةِ بیا که طلاق په اول دَ میاشتې کې وو تو معتبر ولې به شي میاشتې په سپوږمۍ سره وَإِنْ كَانَ فِي وَسَطِهِ او که په مینځ دَ میاشتې کې وو فَبِالْأَيَّامِ فِي حَقِّ التَّفْرِيقِ نو دَ تفریق په حق کې به دَ ورځو په ذریعه وی وَفِي حَقِّ الْعِدَّةِ كَذَلِكَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ ﵀ او دغسې دَ عدت په حق کې دَ امام ابوحنیفه﵀ په نزد وَعِنْدَهُمَا يُكْمِلُ الْأَوَّلَ بِالْأَخِيرِ او په نزد دَ صاحبینو[ ﵀] په اوله مکمل شي پ اخرې میاشتې سره وَالْمُتَوَسِّطَانِ بِالْأَهِلَّةِ (١) او دَ مینځ دواړه به په سپوږمۍ سره

**تشریح:-** دعدت په اړه کې هم دامام ابوحنیفه﵀ په نیزورځې معتبردی .نود ښځې عدت به د نوی (۹۰) ورځو په تیریدو سره پوره کیږي .اودصاحبینو ﵀ په نیزچه د کومې میاشتې په مینځ کې طلاق ورکړې شوې وی .هغه به د میاشت په آخرسره پوره کولې شي .اوبه مینځنودوو میاشتوکې به میاشت معتبروی .مثلاً یوکس خپلې ښځې ته د میاشت په پنځلسم تاریخ طلاق ورکړلو.اودا میاشت د یوکم دیرش ورځو وه.نوڅوارلس

(١) القول الراجح هو قول الصاحبين ﵀ كذا فى فتح القدير(٣\٣٣٥) وردالمحتار(٢\٤٥٤) والبحر الرائق (٣\٤٢١) نقلاً عن القول الراجح (١١\٣٠٨)_

ورځې ددې مياشتې اوشپاړس ورځې د اخرى مياشتې اوپه مينځ كي چې كومې دوې [دوه] مياشتې دي هغه به د سپوږمۍ په حساب سره معتبر وى .كه مياشت د يوكم ديرشو ورځو وى اوكه د ديرشو.

وَهِيَ مَسْأَلَةُ الْإِجَارَاتِ او دا مسئله دَ اجاراتو ده .

تشريح:- دا مسئله په اصل كي د كتاب الاجارات سره تعلق ساتى .يعنى كه د درې مياشتو لپاره ئې د بيخى د مياشت په اول كي كور په كرايه واخستل.نوپه اتفاق سره به دا درې مياشتې د سپوږمۍ په حساب معتبر وى .كه سپوږمۍ د يوكم ديرشو وى اوكه د پوره ديرشو.نودامام ابوحنيفه رحمه الله په نيزبه حساب سره په حساب سره معتبر وى .يعنى نوى ( ۹۰) ورځې به پوره كوى .اودصاحبينو رحمهما الله په نيزبه حساب د ورځو ورځې د آخرئ مياشتې سره په جمع كولوپوره كولې شى .اوپه مينځ كي دوې [دوه] مياشتې به د سپوږمۍ په حساب سره پوره كولې شى .وئيلى شوى دى چې فتوى د صاحبينو رحمهما الله په قول ده. والله اعلم بالصواب

## د آئسه يا ذوات الاشهر ښځې طلاق

وَإِنْ كَانَتْ آيِسَةً أَوْ مِنْ ذَوَاتِ الْأَشْهُرِ اوكه ښځه ائسه يا دَ ذوات الاشهر نه وه وَقَعَتِ السَّاعَةَ وَاحِدَةٌ نو واقع به شى يو طلاق وَبَعْدَ شَهْرٍ أُخْرَى وَبَعْدَ شَهْرٍ أُخْرَى دغه وخت په دويمه مياشت بل او په دريمه مياشت بل لِأَنَّ الشَّهْرَ فِي حَقِّهَا دَلِيلُ الْحَاجَةِ كَالطُّهْرِ فِي حَقِّ ذَوَاتِ الْأَقْرَاءِ عَلَى مَا بَيَّنَّا ځكه چې مياشت دَ دې په حق كي دليل دَ حاجت دې لكه طهر دَ ذوات الحيض په حق كي په هغې تفصيل كوم چې موږ بيان كړو وَإِنْ نَوَى أَنْ يَقَعَ الثَّلَاثُ السَّاعَةَ اوكه نيت ئې او كړو دغه وخت دَ درې واقع كاوه وَقَعْنَ عِنْدَنَا نو واقع به شى په نزد زموږ خِلَافًا لِزُفَرَ لِمَا قُلْنَا

حل اللغة: ① الساعة: هم هغه وخت ② الاقراء:جمع د قرء ،حيض]

تشريح:- مسئله دا ده.چه آئسې اوصغيرې ته په داسې حال كي طلاق وركول چې د طلاق اووطى په مينځ كي فصل اونشى .نودا جائزدې.هم دا دامام مالك امام شافعي اوامام احمد رحمهم الله قول هم دې.② اوامام زفر رحمه الله فرمائيلى دى .چه د طلاق اووطى په مينځ كښې د يوې مياشتې فصل ضرورى دې.

دامام زفر رحمه الله دليل دا دې.چه مياشت دحيض قائم مقام ده.اود ذوات الحيض په عدت كي د وطى اوطلاق په مينځ كي د يوې مياشتې فصل ضرورى وو.نود غيرذوات الحيض په عدت كي به هم د يوې مياشتې فصل ضرورى وى .② دوهم دليل دادې.چه د جماع په وجه رغبت كميږى .نود وطى او ددې د طلاق په مينځ كي په دومره اندازه فصل كول ضرورى دې.چه په هغې تجديد د شوق پيدا شى .اوهغه موده يوه مياشت ده.ددې امله د امام زفر رحمه الله رائې دا ده.چه د آئسې اوصغيرې په وطى اوطلاق كي د يوې مياشتې فصل ضرورى دې.لكه ځنگه چې د ذوات الحيض په عدت كي د يوې مياشتې فصل ضرورى دې.

زموږ دليل دا دې. چې په ذوات الحيض كي د جماع نه روسته د طلاق كراهت د حمل د گمان د امله وو.ځكه چې د حمل د گمان په وخت كي به عدت مشتبه وو.دا به نه معلوميږى .چه دا حامله ده.چه په وضع دحمل عدت تيركړى .اوكه غيرحامله ده.چه په درې حيضو عدت تيركړى .بهرحال هركله چې په ذوات الحيض كي د جماع نه روسته د طلاق كراهت د حمل د گمان د امله وو.اوپه آئيسه اوصغيره كي د حمل د گمان گنجائش نشته.نوددې دواړه په حق كي د جماع نه روسته په طلاق كي هم كراهت نشته.اودوطى اوطلاق په مينځ كي څه اړتيا نشته.

پاتې شوه دا خبره چې په جماع سره شوق كميږى .نودا منو.خوامام زفر رحمه الله چې كومه وجه بيان كړې ده.په هغه اعتبار سره اگرچه رغبت كميږى .خوپه بل اعتبار سره شوق زياتيږى .ځكه چې د آئسې او صغيرې سره وطى اوشى .نوپه دې سره علوق نه راځى .يعنى نه حامله كيږى .اود اولاد د خرچ نه د بچ كيدو لپاره انسان په داسې وطى كي شوق ساتى .چه د هغې نه علوق نه راځى .يعنى چې حامله كيږى نه .نو معلوه شوه.چه د آنسې اوصغيرې په حق كي د جماع نه روسته زمانه هم د شوق زمانه ده.نود حاملې د زمانې سره مشابه



شوه.او حاملې ته د جماع نه روسته بغير فصل نه طلاق وركول جائز دى .

بِخِلَافِ مَا إِذَا قَالَ أَنْتِ طَالِقٌ لِلسُّنَّةِ لكه چې موږ وئيلى دى په خلاف د هغې كله چې ده او وې أنت طالق للسنة وَلَمْ يَنُصَّ عَلَى الثَّلَاثِ حَيْثُ لَا تَصِحُّ نِيَّةُ الْجَمْعِ فِيهِ او دَ ثلث وضاحت ئې او نه كړو چې په دې كي به نيت دَ جمع صحيح نه وى لِأَنَّ نِيَّةَ الثَّلَاثِ إِنَّمَا صَحَّتْ فِيهِ مِنْ حَيْثُ إِنَّ اللَّامَ فِيهِ لِلْوَقْتِ فَيُفِيدُ تَعْمِيمَ الْوَقْتِ ځكه چې د ثلث نيت به په هغې كي صحيح وى په دې حيثيت چې په دې كي لام دَ پاره دَ وخت دې كوم چې فائده وركوى دَ تعميم دَ وخت وَمِنْ ضَرُورَةِ تَعْمِيمِ الْوَاقِعِ فِيهِ او دَ اړتيا دَ ده نه دې تعميم دَ واقع په دې كي فَإِذَا نَوَى الْجَمْعَ نو كه نيت ئې او كړو دَ جمع بَطَلَ تَعْمِيمُ الْوَقْتِ نو تعميم دَ وخت باطل شو فَلَا تَصِحُّ نِيَّةُ الثَّلَاثِ نو په دې وجه دَ دريونيت به صحيح نه وى .

حل اللغة: ① تعميم عام كول]

تشريح:- په مسئله كي څه مشكل نشته.

## حاملې ښځې ته د مباشرت نه روسته طلاق وركول

وَطَلَاقُ الْحَامِلِ يَجُوزُ عَقِيبَ الْجِمَاعِ حاملې له طلاق وركول جائز دى دَ جماع نه روسته لِأَنَّهُ لَا يُؤَدِّي إِلَى اشْتِبَاهِ وَجْهِ الْعِدَّةِ ځكه چې دا د طريق د عدت مشتبه كيدو سبب نه جوړيگى

تشريح:- مسئله، د حاملې ښځې د طلاق او وطى په مينځ كي فصل ضرورى نه دې.بلكه حاملې ښځې ته د جماع نه روسته هم طلاق وركول جائزدى .وجه دا ده.چه دحاملې ښځې سره په وطى كاوه سره عدت نه مشبه كيږى .ځكه چې په حامله كي د عدت طريقه وضع د حمل متعين ده.

وَزَمَانُ الْحَبَلِ زَمَانُ الرَّغْبَةِ فِي الْوَطْءِ او دَ حمل زمانه په وطى كي دَ رغبت زمانه ده لِكَوْنِهِ غَيْرَ مُعَلِّقٍ ځكه چې دا وطى حامله جوړوونكې نه ده

تشريح:- اود حمل زمانه كي په وطى كي د .د دوو وجوهو نه رغبت وى .يو ددې امله چې د حاملې سره وطى كول غير معق وى .يعنى داسې نه ده.چه د حاملې سره په وطى كولوبه بل بچې پيدا شى .اود بلې وطى كاوه سره به دريم بچې پيدا شى .نوهركله چې دا اوپيژنى .چه د حاملې سره وطى كول د زړه خوشحالولو لپاره ده.د زياتى څه بوج سبب نه دې.نو د وطى په شوق كي به زيادت راځى . كمې نه.

أَوْ يُرْغَبُ فِيهَا لِمَكَانِ وَلَدِهِ مِنْهَا يا په ښځه كي دَ رغبت زمانه ده چې دَ ده ولد ترې ممكن الوجود دې فَلَا تَقِلُّ الرَّغْبَةُ بِالْجِمَاعِ نو دَ جماع په وجه رغبت نه كميږى

تشريح:- دويمه وجه دا ده.چه حاملې ښځې دده بچې په خپله نس كي محفوظ كړې دې.اودخپل اولاد سره د انسان فطرى محبت وى .نوددې بچى په وجه به د حاملې سره په محبت كي زيادت وى .اوزيادت محبت وطى ته دعوت وركوى .د وطى نه منع نه كوى .نوددې نه هم ثابته شوه.چه د جماع په وجه د حاملې په وطى كي شوق نه كميږى .

## د حاملې د طلاق سنت طريقه

وَيُطَلِّقُهَا لِلسُّنَّةِ ثَلَاثًا او حاملې ته به په سنت وخت كي درې طلاقه ور كړى يَفْصِلُ بَيْنَ كُلِّ تَطْلِيقَتَيْنِ بِشَهْرٍ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رحمهما الله (١) فصل به كوى دَ هرو دوؤ طلاقو په مينځ كي په مياشت سره په نزد دَ شيخينو

تشريح:- ① مسئله دا ده.چه آنسې اوصغيرې ته په داسې حال كي طلاق وركول چې د طلاق اووطى په مينځ

(١) القول الراجح هو قول الشيخين رحمهما الله كذا فى فتح القدير(۳\۳۳۸) والعناية (۳\۳۳۷) والدرالمختار(۲\٤٥٤) والهندية (۱\۳٤۹) والبحرالرائق (۳\۳۶۲) نقلاً عن القول الراجح (۱\۳۱۰)-

كي فصل اونشي .نودا جائزدي.هم دا دامام مالك امام شافعي اوامام احمد رحمهم الله قول هم دي.

**وَقَالَ مُحَمَّدٌ وَزُفَرُ رحمهما الله لَا يُطَلِّقُهَا لِلسُّنَّةِ إِلَّا وَاحِدَةً** او امام محمد رحمه الله صاحب فرمائي چې په سنت طريقه به په نه طلاقوي مګر په يو سره **لِأَنَّ الْأَصْلَ فِي الطَّلَاقِ الْحَظْرُ** ځکه چې اصل په طلاقو کي ممانعت دي **وَقَدْ وَرَدَ الشَّرْعُ بِالتَّفْرِيقِ عَلَى فُصُولِ الْعِدَّةِ** او شريعت وارد شوي دي په فصولو دَ عدت باندې په تفريق سره **وَالشَّهْرُ فِي حَقِّ الْحَامِلِ لَيْسَ مِنْ فُصُولِهَا فَصَارَ كَالْمُمْتَدِّ طُهْرُهَا** او مياشت په حق دَ حاملې کي دَ فصولو دَ عدت نه نه ده نو دا داسې شو لکه هغه ښځه چې طهر يې اوږدوي

حل اللغة* ① **التفريق**:جدا كول ② **الممتدة طهرها**: هغه زنانه چې طهر ئې اوږد شوي وي ]

تشريح:- امام محمد رحمه الله فرمائي .چه د حاملې ښځې لپاره سنت طلاق صرف يو طلاق دي.هم دا قول د امام زفر،امام مالك امام شافعي اوامام احمد رحمهم الله هم دي.

دامام محمد رحمه الله دليل دا دي.چه اصل په طلاق کي ممانعت دي.اوشريعت په دې وارد شوي دي.چه طلاق د عدت په فصلونوباندې متفرق کړې شي .يعنی په ذوات الحيض کي دې درې طلاقونه په دريو طهرونوباندې متفرق واقع کړې شي .اوچونکه شريعت په دې باندې هم وارد شوي دي.چه مياشت د حيض قائم مقام ده.د انسې اوصغيرې په حق کي .نوطلاقونه چې په مياشتومتفرق کولې شي .په دې کي به آئسه اوصغيره په ذوات الحيض پورې ملحق کولې شي .اودحاملې په حق کي مياشت د عدت په فصلونوکي نه ده.بلکه د طهرپه پوره موده کي په سنت طريقه صرف يوطلاق ورکولې شي .دغه ډول كه حاملې ښځې ته په سنت طريقه باندې طلاق ورکول غواړي .نوددې طلاق به په دريومياشتو نشي متفرق کولې.بلکه په مسنون طريقه به د حمل په ټوله موده کي صرف يوطلاق ورکوي .

**وَلَهُمَا أَنَّ الْإِبَاحَةَ بِعِلَّةِ الْحَاجَةِ** دَ شيخينو دليل دا دې چې اباحت دَ علت دَ حاجت په وجه دي **وَالشَّهْرُ دَلِيلُهَا كَمَا فِي حَقِّ الْآيِسَةِ وَالصَّغِيرَةِ** او مياشت دليل دَ حاجت دي لکه دَ آئسه او صغيره په حق کي، **وَهَذَا لِأَنَّهُ زَمَانُ تَجَدُّدِ الرَّغْبَةِ** او دا ځکه ده چې مياشت دَ تجدد دَ رغبت زمانه ده په دې بنا چې طبيعت سليمه په دې واقع دې **عَلَيْهِ الْجِبِلَّةُ السَّلِيمَةُ فَصَلَحَ عَلَمًا وَدَلِيلًا** نو مياشت دَ علامت او دليل جوړيدو صلاحيت لرې

تشريح:-د شيخينو رحمهما الله دليل دا دي.چه د طلاق اباحت د حاجت په وجه دي.او مياشت د حاجت دليل دي.لکه ځنګه چې د آئسه اوصغيره په حق کي مياشت دليل د حاجت ده.ځکه چې په مياشت کي په فطرت سليمه کي شوق اورغبت پيدا کيږي .نوثابته شوه.چه مياشت د حامله په حق کي هم دليل د حاجت دي.او وړاندې تيرشوي دی .چه حکم د حاجت په دليل باندې مرتب کيږي .په حقيقي حاجت باندې نه.اوچونکه د حامله په حق کي دليل د حاجت (مياشت) موجود دي.نوددې په حق کي به هم په درې مياشتوکي جلا جلا د طلاق حکم مرتب کړې شي .

**بِخِلَافِ الْمُمْتَدِّ طُهْرُهَا** په خلاف دَ ممتدې دَ طهر نه **لِأَنَّ الْعَلَمَ فِي حَقِّهَا إِنَّمَا هُوَ الطُّهْرُ** ځکه چې دَ دې په حق کي علامت طهر دي **وَهُوَ مَرْجُوٌّ فِيهَا فِي كُلِّ زَمَانٍ** او دغه په هره زمانه کي متوقع دي **وَلَا يُرْجَى مَعَ الْحَبَلِ** او دَ حمل سره دَ دې اميد نه شي کيداې .

تشريح:- دا عبارت د امام محمد رحمه الله دقياس خواب دي.حاصل د ځواب دا دي.چه حامله ښځه په هغه ښځه قياس کول چې طهرئې اوږد شوې وی .خلاف قياس دي.ځکه چې په دې دواړوکي توپير دي.فرق دا دي.چه د ممتدة الطهر په حق کي دليل د حاجت طهر يعنی تجديد دطهردي.اوددې په اړه کي په هره زمانه کي اميد کيداې شی .ځکه چې ممکن ده.چه په دې د حيض وينه راشي .اوددې نه روسته بيا طهرموجود شی .اودحمل سره دطهردتجديد اميد نشی کيدې.ځکه چې د حاملې ښځې د حمل د وضع نه وړاندې حيض نه راځي .نوهرکله چې په دې دواړوکي دومره توپير دي.نود يوپه بل باندې قياس کول قياس مع الفارق دي.



## په حالت دحيض کي طلاق ورکول

**وَإِذَا طَلَّقَ الرَّجُلُ امْرَأَتَهُ فِي حَالَةِ الْحَيْضِ وَقَعَ الطَّلَاقُ** او كه طلاقه كړه يو سړی خپله ښځه په حالت دَ حيض کي نو واقع شو طلاق

تشريح:- مسئله، كه يوسړی په حالت د حيض کي خپلې ښځې ته طلاق ورکړلو.نو طلاق واقع شو.اوپه اجماع سره طلاق ورکونکې ګناهګاردي.

**لِأَنَّ النَّهْيَ عَنْهُ لِمَعْنًى فِي غَيْرِهِ** ځکه چې په حالت دَ حيض کي دَ طلاقو نهی په داسې معنی کي ده کومه چې په بل کي ده . **وَهُوَ مَا ذَكَرْنَاهُ** او داهغه معنی ده کومه چې موږ ذکر کړې ده **فَلَا يَنْعَدِمُ مَشْرُوعِيَّتُهُ** نو دَ دې مشروعيت به معدوم نه وی .

تشريح:-دطلاق د واقع کيدو دليل دا دي.چه په حالت د حيض کي طلاق ممنوع لغيره دي.(يعنی د طلاق نه منع خود په طلاق کي د څه امله نه ده.بلکه د يوبل خارجی شي د امله ده)اوهغه غيره د عدت اوږديدل دی .يعنی په حيض کي د طلاق ورکولوپه وجه به عدت اوږدشی .ځکه چې په کوم حيض کي چې طلاق ورکړی .هغه په عدت کي نشی شمارلې.اودغه شان چې په دې پسې کوم طهروی .هغه په کي هم نشی شمارلې.حاصل دا چې په حالت د حيض کي نهی د طلاق نه نهی لغيره ده.اودنهی لغيره سره مشروع لذاته پاته پاتې کيږي .ددې امله موږ وايو.چه په حالت د حيض کي د طلاق في نفسه مشروعيت نه ختميږي .

**وَيُسْتَحَبُّ لَهُ أَنْ يُرَاجِعَهَا** او مستحب دی ورته چې ښځې ته مراجعت او کړی **لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ لِعُمَرَ مُرْ ابْنَكَ** حضرت عمر رضي الله عنه د نبی کريم ﷺ دَ ارشاد په وجه خپل ځوئی ته حکم او کړو {**فَلْيُرَاجِعْهَا**}() **وَقَدْ طَلَّقَهَا فِي حَالَةِ الْحَيْضِ** چه رجعت ورته او کړی او حال دا چې ده په حالت دَ حيض کي طلاق ورکړی وو **وَهَذَا يُفِيدُ الْوُقُوعَ وَالْحَثَّ عَلَى الرَّجْعَةِ** او دا قول مفيد دې دَ وقوع دَطلاقو او رجعت ته په اما ده کولو

حل اللغة* ① **الحث**: رغبت ورکول ② **الرجعة**:رجوع کول]

تشريح:صاحب دقدوری رحمه الله فرمائي .چه ددې سړی لپاره خپلې ښځې ته رجوع کول مستحب دی .

ددليل دا دي.چه حضرت عبدالله بن عمررضی الله عنهما خپلې ښځې ته په حالت د حيض کي طلاق ورکړې وو.نوحضرت عمر رضي الله عنه د نبی ﷺ نه په دې اړه کي پوښتنه اوکړه .نبی ﷺ ورته اوفرمائيل.خپل ځوئی ته اووايه.چه ښځې ته رجوع اوړکړی .ددې حديث نه دوې [دوه] خبرې معلومې شوې.① يوه دا چې په حالت د حيض کي طلاق واقع کيږي .ځکه كه په حالت د حيض کي طلاق نه واقع کيدلو.نوحضرت عبدالله بن عمررضی الله عنهما ته چې ئې د رجوع حکم کړې وو.د دې بيا څه مطلب وو؟② دويمه خبره دا چې په دې حديث کي په رجوع کولوباندې اماده کړې شوې دي.

**ثُمَّ الِاسْتِحْبَابُ قَوْلُ بَعْضِ الْمَشَايِخِ**.بيا استحباب قول دَ بعض مشائخو دي **وَالْأَصَحُّ أَنَّهُ وَاجِبٌ عَمَلًا بِحَقِيقَةِ الْأَمْرِ** او صحيح دا ده چې واجب دی په حقيقت دَ امر عمل کول **وَدَفْعًا لِلْمَعْصِيَةِ بِالْقَدْرِ الْمُمْكِنِ بِرَفْعِ أَثَرِهِ وَهُوَ الْعِدَّةُ** او په قدر ممکن د ګناه پورته کولو چې اثر دَ طلاقو پورته شی چې هغه عدت دي **وَدَفْعًا لِضَرَرِ تَطْوِيلِ الْعِدَّةِ** او دَ اوږدعدت دَ ضرر لرې کاوه دَ پاره .

حل اللغة* ① **المعصية**: ګناه ② **تطويل**:اوږدول]

---

() من حديث ابن عمر رضي الله عنهما أخرجه البخاری فی الطلاق باب ۱ رقم ۵۲۵۱ ومسلم فی الطلاق رقم ۱ وأبوداود فی الطلاق باب ٤ رقم ۲۱۷۹ والترمذی فی الطلاق باب ۱ رقم ۱۱۷۵ والنسائی فی الطلاق رقم ۳۱۷۵ وابن ماجه ی الطلاق باب ۲ رقم ۲۰۱۹ ) .

تشریح:- صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی .چه بعضې مشائخ رحمهم الله د رجوع د استحباب قائلین دی .خوصحیح خبره دا ده.چه رجوع واجب ده.

د استحباب دلیل دا دې.چه په حدیث کې [فلیراجعها] د امرصیغه ده.اود امر ادنی درجه استحباب ده.

اودلیل د استحباب قرینه هم موجود ده.قرینه دا ده.چه رجعت صرف د خاوند حق دې.اوپه خاوند باندې په خپل حق کې څه واجب نه وی .

① د د رجوع د وجوب دلیل دا دې.چه مطلق امر لپاره د وجوب وی .نوچه وجوب ترې مراد شی .په دې کې د امرپه حقیقت عمل دې.② اورجعت ددې امله هم واجب دې.چه طلاق ورکول معصیت دې.اود معصیت (ګناه) لرې کول واجب دی .ددې تفصیل دا دې.چه په حالت د حیض کې طلاق ورکول ګناه ده.نومناسب خودا وه.چه نفس طلاق اوعین طلاق پورته کړې شوې وو.خود نفس طلاق ختمول ممکن نه وو.نوځکه مونږ وایو.کم ازکم ددې اثرخودې ختم کړې شی .اودطلاق اثرعدت دې.نو لنډیز دا شوه.چه رجوع دې اوکړی .اوعدت دې پورته کړې شی .چه څومره کیداې شی .چه معصیت پورته کړې شی .③ اورجعت ددې امله هم واجب دې.چه د رجوع کولوپه وجه چې ښځې ته د عدت په اوږدوالی کوم تکلیف رسی .هغه به ختم شی .

**د دوهم طلاق د طهارت نه روسته خاوندته د رجوع کولواختیار**

فَإِذَا طَهُرَتْ وَحَاضَتْ ثُمَّ طَهُرَتْ بیا چې کله دغه پاکه شی او حائضه شی او بیا پاکه شی فَإِنْ شَاءَ طَلَّقَهَا وَإِنْ شَاءَ أَمْسَكَهَا نو که غواړی طلاق دې ورکړی او که غواړی او دې ساتی قَالَ رضی الله عنه وَهٰكَذَا ذُكِرَ فِي الْأَصْلِ علامه مرغینانی فرمائی چې داسې په مبسوط کې ذکر دی

تشریح:- صورت د مسئلې دا دې.چه په کوم حیض کې ښځې ته طلاق ورکړی .نوهغه حیض د ختمیدو نه روسته چې طهرراشی .اوورپسې بل حیض راشی .اود دوهم حیض نه پاکه شی .نوددې نه روسته خاوند ته دا اختیار حاصل دې.که دا ایساروی .اوکه طلاق ورته ورکوی .صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی .چه امام محمد رحمه الله په مبسوط کې هم دا صورت ذکرکړې دې.

وَذَكَرَ الطَّحَاوِيُّ رحمه الله أَنَّهُ طَلَّقَهَا فِي الطُّهْرِ الَّذِي يَلِي الْحَيْضَةَ الْأُولَى او طحاوی ذکرکړی دی چې طلاق دې ورکړی په هغې طهر کې چې دې اولنی حیض پسې وی .قَالَ أَبُو الْحَسَنِ الْكَرْخِيُّ مَا ذَكَرَ الطَّحَاوِيُّ قَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ ابوالحسن کرخی فرمائی چې امام طحاوی کوم ذکر کړی دی دغه دَ امام ابوحنیفه رحمه الله قول دې وَمَا ذُكِرَ فِي الْأَصْلِ قَوْلُهُمَا او په مبسوط کې چې ذکر دی دغه دَ صاحبینو رح قول دې

تشریح:- امام طحاوی رحمه الله فرمائیلی دی .چه په کوم حیض کې ئې ورته طلاق ورکړې وی .چه دهغې نه پاکه شی .نو په دې طهرکې خاوند ته اختیاردې.که خوښه ئې وی .نوایساره دې کړی .اوکه خوښه ئې وی .نوطلاق دې ورکړی .

امام ابوالحسن کرخی رحمه الله په دې دواړو روایتونوکې داسې تطبیق کړې دې.چه امام طحاوی رحمه الله چې کوم روایت نقل کړې دې.دا دامام ابوحنیفه رحمه الله قول دې.اود مبسوط روایت د صاحبینو رحمهما الله قول دې.

یوحدیث امام ترمذی رحمه الله نقل کړې دې.[عن سالم عن ابن عبدالله رضی الله عنهما أنه ﷺ قال لعمر رضی الله عنه مره فلیراجعها ثم لیطلقها إذا طهرت] دا حدیث دامام طحاوی رحمه الله د ذکرکړی روایت تائید کوی .دا دواړه احادیث چونکه متعارض دی .ددې امله مصنف رحمه الله د دواړوروایتونو لپاره صرف د عقلی امله په بیانولوباندې اکتفا اوکړله. ② دوهم حدیث امام بخاری رحمه الله نقل کړی دی .[عن نافع عن عبدالله بن عمر رضی الله عنهما أن رسول الله ﷺ قال لعمر رضی الله عنه مره فلیراجعها ثم لیمسکها حتی تطهرثم تحیض ثم تطهرثم إن شاء أمسك وأن شاء طلق قبل أن یمس] په دې حدیث سره د هغه روایت تائید کیږی .کوم چې په مبسوط کې ذکرشوې دې.(ژباړه آسانه ده)



وَوَجْهُ الْمَذْكُورِ فِي الْأَصْلِ أَنَّ السُّنَّةَ أَنْ يَفْصِلَ بَيْنَ كُلِّ طَلَاقَيْنِ بِحَيْضَةٍ او دَ مبسوط دَ قول وجه دا ده چې دَ هرو دوو طلاقو په مینځ کې په کامل حیض سره فصل کول سنت دی وَالْفَاصِلُ هَاهُنَا بَعْضُ الْحَيْضَةِ او دلته فاصل بعض دې فَتَكْمُلُ بِالثَّانِيَةِ نو دَ حیض دوهم سره به مکمل کولای شی وَلَا تَتَجَزَّأُ فَتَتَكَامَلُ اودغه متجزی کیږی نه نو حیض دوهم به مکمل شی وَإِذَا تَكَامَلَتِ الْحَيْضَةُ الثَّانِيَةُ اوکله چې حیض دوهم مکمل شو فَالطُّهْرُ الَّذِي يَلِيهِ زَمَانُ السُّنَّةِ نو دغه طهر کوم چې دَ دینه روسته دې دَ سنت زمانه ده فَأَمْكَنَ تَطْلِيقُهَا عَلَى وَجْهِ السُّنَّةِ نو دې ته په سنت طریقه طلاق ور کول ممکن دی

تشریح:- په مبسوط کې چې کوم روایت ذکرشوې دې.دهغې عقلی وجه دا ده.چه د دوو طلاقو په مینځ کې په کامل حیض سره فصل کول مسنون دې.اودلته چونکه هم په حیض کې طلاق واقع شوې دې.اوبیا هغې ته رجوع شوې ده.اوس که په دې پسې چې کوم طهرراځی .په هغې کې طلاق ورکړې شی .نود دوو طلاقونوپه مینځ کې کامل حیض فاصل نشو.بلکه د حیض څه برخه فاصله شوه.نودا اول حیض به په دوهم حیض باندې کامل کولې شی .اوپه حیض کې چونکه ویش نشی کیدې.نوښځه به دوهم حیض هم پوره تیروی .نوهرکله چې دوهم حیض پوره شی .اوپه هغې پسې کوم طهرراشی .هغه د سنت طلاق وخت دې.او په دغه طهرکې په مسنون طریقه ورکول ممکن دی .

وَجْهُ الْقَوْلِ الْآخَرِ أَنَّ أَثَرَ الطَّلَاقِ قَدِ انْعَدَمَ بِالْمُرَاجَعَةِ دَ دوهم قول وجه دا ده چې دَ طلاقو اثر معدوم شو دَ مراجعت په وجه سره فَصَارَ كَأَنَّهُ لَمْ يُطَلِّقْهَا فِي الْحَيْضِ نو داسې شوه لکه چې ګویا دیته ئې په حیض کې طلاف ور کړی نه دی فَيُسَنُّ تَطْلِيقُهَا فِي الطُّهْرِ الَّذِي يَلِيهِ نو دې ته طلاق ورکول به مسنون وی په هغې طهر کې چې دَ دینه روسته دې .

حل اللغة: ① انعدم: نیشت شو، ختم شو ② المراجعة: رجوع کول]

تشریح:- د دوهم قول یعنی دامام طحاوی رحمه الله د ذکرکړی روایت عقلی وجه دا ده.چه هغه طلاق کوم چې په حیض کې واقع شوې وو.د رجوع کولوپه وجه د هغې اثرختم شو.نودا داسې شوه.چه هډودې ښځې ته په حیض کې طلاق ورکړې شوي نه دې.نودې ښځې ته په راروان ورپسې جخت طهرکې طلاق ورکول مسنون دې.

**بغیرنیته مدخول بها حائضه ته د سنت مطابق طلاق ورکول**

وَمَنْ قَالَ لِامْرَأَتِهِ اوڅوك چې خپلې ښځې ته ووایي وَهِيَ مِنْ ذَوَاتِ الْحَيْضِ اودا د ذوات الحیض څنی وی . وَقَدْ دَخَلَ بِهَا: أَنْتِ طَالِقٌ ثَلَاثًا لِلسُّنَّةِ اووه پرې دخول کړې وی .چه ته په درې طلاقوطلاقه ئې وَلَا نِيَّةَ لَهُ او حال داچه دَ ده هیڅ نیت نه وه فَهِيَ طَالِقٌ عِنْدَ كُلِّ طُهْرٍ تَطْلِيقَةً نو دا ښځې به دَ هر طهر په حالت کې په یو طلاق طلاقه وی

تشریح:- صورت د مسئلې دا دې.چه یوسړی خپلې مدخول بها ښځې ته اووئیل.[أنت طالق ثلاثا لسنة] نودغه ښځه به یا د ذوات الحیض څنی وی اویا د ذوات الاشهرڅنی .بیا په دې کې د یودوې [ادوه] صورتونه دی . یا خو به دا ذکرکوی .اود څه نیت به ئې نه وی .اویا به ئې د څه نیت کړې وی .که دغه ښځه د ذوات الحیض څنی وی .اود څه نیت ئې نه وی کړی.نودهغې په هریوطهرکې به یوطلاق واقع کیږی .

لِأَنَّ اللَّامَ فِيهِ لِلْوَقْتِ وَوَقْتُ السُّنَّةِ طُهْرٌ لَا جِمَاعَ فِيهِ ځکه چې په دې کې لام دَ پاره دَ وخت دې او سنت وخت داسې طهر دې چې جماع پکې نه وی وَإِنْ نَوَى أَنْ تَقَعَ الثَّلَاثُ السَّاعَةَ اوکه نیت ئې اوکړو چې دادرې واړه دې اوس واقع شی أَوْ عِنْدَ رَأْسِ كُلِّ شَهْرٍ وَاحِدَةً یا دَ هرې میاشتې په پیل کې یو فَهُوَ عَلَى مَا نَوَى سَوَاءٌ كَانَتْ فِي حَالَةِ الْحَيْضِ أَوْ فِي حَالَةِ الطُّهْرِ نو دا به دده په نیت وی خواه په حالت دَحیض کې وی اوکه په حالت دَ طهر کې

تشریح:- دلیل دا دي.چه په [للسنة] کي [لام] لپاره د وقت دي.اود سنت وخت داسي طهردي.چه په هغي کي جماع نه وی شوي.اوکه ددي نیت ئې کړی وی .چه دري طلاقه په یوځل.یا دهري میاشت په پیل کي یوطلاق دي واقع شی .نودا کلام به دده په نیت باندي وی .یعنی که دا نیت ئې کړی وی .چه دري طلاقه دي په یوځل واقع شی .نودري طلاقه به هم په هغه وخت کي واقع کیږي .که حالت د حیض وی اوکه د طهر ،دغه ډول که د هري میاشت په پیل کي ئې د طلاق واقع کیدو نیت کړي وی .نودهري میاشت په پیل کي به یوطلاق واقع کیږي .برابره ده که د حیض نه دمیاشت پیل کیږي اوکه د طهر نه.

وَقَالَ زُفَرُ رَحِمَهُ اللهُ: لَا تَصِحُّ نِيَّةُ الْجَمْعِ.او امام زفر رحمه الله فرمائیي جه نیت دَ جمع صحیح نه دي لِأَنَّهُ بِدْعَةٌ ځکه چي دا بدعت دي وَهِيَ ضِدُّ السُّنَّةِ او بدعت دَ سنت ضد دي

تشریح:-اوامام زفر رحمه الله فرمائی .چه په یووخت کي نیت جمع کول صحیح نه دی .ځکه چي په یو وخت کي دري طلاقه ورکول بدعت دی .اوبدعت د سنت ضد دي.اوقاعده دا ده.چه په یوڅیزسره د هغي د ضد اراده نشی کولي.نود سنت په لفظ سره د بدعت اراده کول صحیح نه دی .

وَلَنَا أَنَّهُ مُحْتَمِلُ لَفْظِهِ زمونږ دلیل دا دي چي نیت دَ جمع دَ ده٭ دَ کار متحمل دي لِأَنَّهُ سُنِّيٌّ وُقُوعًا مِنْ حَيْثُ إِنَّ وُقُوعَهُ بِالسُّنَّةِ لَا إِيقَاعًا ځکه چي دغه سني الوقوع دی په دي حیثیت چي دَ دي وقوع د سنتونه ده نه چي سني الایقاع په فَلَمْ يَتَنَاوَلْهُ مُطْلَقُ كَلَامِهِ وَيَنْتَظِمُهُ عِنْدَ نِيَّتِهِ ګډ به نه وي دي لره دَ د ده مطلق کلام اوشامل به وی دي لره په وخت دَ نیت کي

تشریح:-زمونږدلیل دا دي.چه د دري طلاقو په یوځل واقع کیدل یا د حیض په حالت کي د طلاق واقع کیدل دده د کلام [أنت طالق للسنة] محتمل دی .ځکه چي د سنت دوي [دوه] قسمونه دی .① یوسني وقوع ②اوبله سني ایقاع.

①اد سني وقوع مطلب دا دي.چه دري طلاقه په یوځل واقع کیدل د سنت نه ثابت دی .ځکه چي نبی ﷺ فرمائیلی دی .[من طلق إمرأته ألفاً بانت منه بثلاث والباته رد علیه] یعنی کوم کس چي خپلي ښځي ته زر طلاقونه ورکړل.نوهغه دده نه روسته زردریو سره بائینه شوه.اوپاته په ده باندي واپس دی .② یا دسني وقوع مطلب دا دي.چه په یوځل د دري طلاقونوواقع کیدل داهل سنت مذهب دي.

اود سني ایقاع مطلب دا دي.چه دري طلاقه په سنت طریقه باندي واقع کړي شی .یعنی په دري طهرونو کي دري طلاقه ورکړي شی .خوپه دي شرط چي دغه طهرونه د جماع نه خالی وی .

اًبهرحال په [أنت طالق للسنة] کي دوي [دوه] احتمالات دی .① یودا چي سنت کامله وی .سنت کامله دا دي.چه د وقوع اوایقاع دواړو په اعتبارسره سنت وی .② دوهم احتمال دا دي.چه سنت قاصره وی .یعنی وقوع سنت وی .خوایقاع سنت نه وی .

اًنوهرلکه چي خاوند [أنت طالق للسنة] اوونیل.اودڅه نیت ئې نه وی کړي.نولفظ د سنت چونکه مطلق دي.نوسنت کامله ته به راجع کولي شی .اوهرکله چي ده په یوځل د دري طلاقونود واقع کیدو نیت کړي وی .نودا لفظ به سني وقوع اړخ ته راجع کولي شی .اوپه یووخت به دري واړه طلاقونه واقع کیږي .ځکه چي دا کلام د سني وقوع احتمال هم لري .نودي کس (په دي کلام کي) دخپل محتمل څیزنیت کړي دي د بل شی نیت ئې نه دي کړي.

### آئسه یا ذوات الأشهرته په سنت طریقه د طلاق ورکولو وینا

وَإِنْ كَانَتْ آيِسَةً أَوْ مِنْ ذَوَاتِ الْأَشْهُرِ اوکه ښځه ا ئسه یا دَ ذوات الاشهر نه وه وَقَعَتِ السَّاعَةَ وَاحِدَةٌ وَبَعْدَ شَهْرٍ أُخْرَى وَبَعْدَ شَهْرٍ أُخْرَى نو واقع به شی یو طلاق دغه وخت په دویمه میاشت بل او په دریمه میاشت بل لِأَنَّ الشَّهْرَ فِي حَقِّهَا



دَلِيلُ الْحَاجَةِ ځکه چي میاشت دَ دي په حق کي دلیل دَ حاجت دي كَالطُّهْرِ فِي حَقِّ ذَوَاتِ الْأَقْرَاءِ عَلَى مَا بَيَّنَّا لکه طهر دَ ذوات الحیض په حق کي په هغي تفصیل کوم چي موږ بیان کړو

حل اللغة٭ ① آئسة: د حیض راتلو نه ناامیده ښځه ② اقراء:جمع د قرء ،حیض]

تشریح:-صورت د مسئلي دا دي.چه مدخول بها ښځه چي [أنت طالق ثلاثاً للسنة] ئې ورته وئیلی وی .نوکه دا د ذوات الحیض څنی نه وی .یعنی آئسه یا صغیره وه.نوپه دي به یوطلاق في الحال واقع شی .او دوهم طلاق به دویمه میاشت روسته اودریم طلاق به دریمه میاشت روسته واقع کیږي .ځکه چي میاشت ددي په حق کي دلیل د حاجت دي.لکه څنګه چي طهرد ذوات الحیض په اړه کي دلیل دحاجت دي.دلیل ددي نه وړاندي تیر شوي دي.د غیرذوات الحیض په حق کي میاشت د حیض قائم مقام ده.

وَإِنْ نَوَى أَنْ يَقَعَ الثَّلَاثُ السَّاعَةَ اوکه نیت ئې او کړو دغه وخت دَ دري واقع کاوه وَقَعْنَ عِنْدَنَا نو واقع به شی په نزد زمونږ خِلَافًا لِزُفَرَ لِمَا قُلْنَا لکه چي موږ وئیلی دی

تشریح:-اوکه خاوند دا نیت کړي وی .چه دري طلاقه په یو وخت واقع شی .نوزمونږ په نیزبه دري واړه طلاقه هم په هغه وخت کي واقع کیږي .اودامام زفر رحمه الله په دي مسئله کي هم اختلاف دي.د دواړو دلیل د دي نه په وړاندي مسئله کي تیرشوي دي.هلته ئې اوګوري.

بِخِلَافِ مَا إِذَا قَالَ أَنْتِ طَالِقٌ لِلسُّنَّةِ په خلاف د هغي کله چي ده او وي أنت طالق للسنة وَلَمْ يَنُصَّ عَلَى الثَّلَاثِ حَيْثُ لَا تَصِحُّ نِيَّةُ الْجَمْعِ فِيهِ او دَ ثلث وضاحت ئې او نه کړو چي په دي کي به نیت دَ جمع صحیح نه وی لِأَنَّ نِيَّةَ الثَّلَاثِ إِنَّمَا صَحَّتْ فِيهِ مِنْ حَيْثُ إِنَّ اللَّامَ فِيهِ لِلْوَقْتِ فَيُفِيدُ تَعْمِيمَ الْوَقْتِ ځکه چي دَ ثلث نیت به په هغي کي صحیح وی په دي حیثیت چي په دي کي لام دَ پاره دَ وخت دي کوم چي فائده ور کوی دَ تعمیم دَ وخت وَمِنْ ضَرُورَتِهِ تَعْمِيمُ الْوَاقِعِ فِيهِ او دَ ارتیا دَ ده٭ نه دي تعمیم دَ واقع په دي کي فَإِذَا نَوَى الْجَمْعَ نو که نیت ئې او کړو دَ جمع بَطَلَ تَعْمِيمُ الْوَقْتِ فَلَا تَصِحُّ نِيَّةُ الثَّلَاثِ نو تعمیم دَ وخت باطل شو نو په دي وجه دَ دریونیت به صحیح نه وی .

تشریح:په خلاف دهغه صورت کي چي خاوند خپلي مدخول بها ښځي ته اووائی .[أنت طالق للسنة] اولفظ د [ثلاثا] ذکر نکړي .نوپه یووخت د دري طلاقونو واقع کیدو نیت نه صحیح کیږي .ځکه چي د دري طلاقونو نیت په هغه وخت کي صحیح کیږي .چه په [للسنة] کي لام لپاره د وخت وی .اود سنت طلاق وخت متعدد دي.نولام به د وخت د عموم لپاره مفید وی .اوچه په وخت کي تعمیم وی .نوپه وخت کي ددي واقع کیدل ددي د لوازماتو څنی ده.ځکه چي وخت به ظرف وی .اوڅه چي په دي کي وی .هغه به مظروف وی .اوتکرارد ظرف مستلزم دي تکرار د مظروف لره.نوهرکله چي د دري طلاقونو نیت اوکړی .نود وخت تعمیم باطل شو.اوچه تعمیم في الوقت باطل شی .نوپه دي سره تعمیم واقع في الوقت هم باطلیږي .ځکه چي بطلان مقتضی د موجب دي د بطلان مقتضی ،نود دري طلاقونوجمع کاوه نیت صحیح نه دي.

### د چا طلاق واقع کیږي اودچا نه

(فَصْلٌ) وَيَقَعُ طَلَاقُ كُلِّ زَوْجٍ إِذَا كَانَ عَاقِلًا بَالِغًا (فصل ) واقع کیږي طلاق دَ هر خاوند کله چي دي بالغ او عاقل وی وَلَا يَقَعُ طَلَاقُ الصَّبِيِّ وَالْمَجْنُونِ وَالنَّائِمِ و نه واقع کیږي طلاق دَ صبي او مجنون او ویده (اوده) ،

تشریح:- په دي فصل کي دا مسئله بیان شوي ده.چه د چا طلاق واقع کیږي اوکه د چا نه واقع کیږي . فرمائی .که خاوند عاقل بالغ وی .ویده (اوده) خپلي ښځي ته طلاق ورکړلو.نوطلاق واقع کیږي .اوکه ماشوم یا لیوني یا ویده (اوده) وی .نوطلاق نه واقع کیږي .

لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ځکه چې دَ نبی کریم ﷺ ارشاد دې كُلُّ طَلَاقٍ جَائِزٌ إِلَّا طَلَاقَ الصَّبِيِّ وَالْمَجْنُونِ(۱) چه هر طلاق نافذ دی مګر دَ بچي او لیوني طلاق

**تشريح:-** ① ځکه چې نبی ﷺ فرمائيلي دی .هريو طلاق واقع كيږی سوا د ماشوم او ليونی د طلاقه.

وَلِأَنَّ الْأَهْلِيَّةَ بِالْعَقْلِ الْمُمَيِّزِ او ځکه چې اهليت په عقل او په تميز سره دې وَهُمَا عَدِيمَا الْعَقْلِ او دغه دواړه عديم العقل دی وَالنَّائِمُ عَدِيمُ الْاِخْتِيَارِ او دَ ويده (اوده) اختيار نشته

**تشريح:-** دوهم دليل دا دې.چه د تصرف اهليت په عقل مميز باندې راځی .(يعنی دهغه چا تصرف قبليږی .چه په چا كي عقل وی .اود ښه اوبد تميز كولې شی )او ماشوم اوليوني دواړو كي عقل مميز نشته.نومعلومه شوه.چه په دوی دواړوکي د طلاق اهليت نشته.اوچه د طلاق اهليت په كي نشته.نود دوی طلاق به واقع كيږی هم نه.اوځوك چې ويده (اوده) وی .نوپه ده كي اختيار نشته.حالانكه په تصرف كي اختيار شرط دې.

### په زوره طلاق وركولو حكم

وَطَلَاقُ الْمُكْرَهِ وَاقِعٌ او طلاق دَ مكره واقع دی

**تشريح:-** مكره د كاف په فتح سره هغه كس ته وائی .چاته چې د بادشاه داړخه د ده د بدن يا يواندام ته د تكليف رسولو دهمكی ملاؤ شوې وی .ياورته د داسې كس نه دهمكی ملاؤ شوې وی .چه دهغه نه د دغه ضرر رسول متصور(اوممكن) وی .

مسئله دا ده.كه يوكس مجبوره كړې شی .چه ته خپلې ښځې ته طلاق وركړه.اودې طلاق وركړی .
① نوزموږ په نيزدده طلاق واقع كيږی .

خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ رحمه الله په خلاف دَ امام شافعي رحمه الله هُوَ يَقُولُ إِنَّ الْإِكْرَاهَ لَا يُجَامِعُ الْاِخْتِيَارَ دې فرمائی چې اكراه نه شی جمع كيداې دَ اختيار سره وَبِهِ يُعْتَبَرُ التَّصَرُّفُ الشَّرْعِيُّ او په اختيار سره معتبريږی شرعی تصرف

**تشريح:-** دامام شافعي رحمه الله په نيزنه واقع كيږی .امام مالك اوامام احمد رحمهما الله هم ددې قائلين دی .
دامام شافعي رحمه الله دليل دا دې.چه زور اواختيار دواړه نشی جمع كيدې.اوتصرفات شرعی په اختيار سره معتبر دی .چه اختيار نه وی .نوهغه تصرف به معتبر هم نه وی .نود اختيار د نشتوالی د امله د مجبوره كړې شوی كس طلاق نه واقع كيږی .

بِخِلَافِ الْهَازِلِ په خلاف دَ مسخره كوونكی نه لِأَنَّهُ مُخْتَارٌ فِي التَّكَلُّمِ بِالطَّلَاقِ ځكه چې دې په تكلم بالطلاق باندې مختار دې

**تشريح:-** په خلاف د مزاحی كس چې په خندا او ګپ شپ كي خپلې ښځې ته طلاق وركړی .نوطلاق واقع كيږی .ځكه چې مزاحی د طلاق وركولو په تلفظ كي باالختياره دې.② امام شافعي رحمه الله د نبی ﷺ په دې ارشاد باندې هم استدلال كوی .چه [رفع عن أمتي الخطأ والنسيان وما استكرهوا عليه] يعنی زما د امت نه خطا ، هيره اوهغه څه پورته كړې شوی دی .چه مجبوره كړې شی پرې.
خوددې حديث ځواب دا دې.چه په حديث كي د آخرت حكم پورته كيدل مراد دی .يعنی د خطا هيرې اومجبورتيا په وجه به په آخرت كي عذاب نه وی .اوپه دنيا كي په خطا اوهيره باندې حكم مرتب كيږی .
مثلاً ① په قتل خطا كي اګرچه په آخرت كي څه سزا نشته.خوپه دنيا كي ديت واجب دې.② دغه ډول كه په لمانځه كي په هيرې سره سهوه شی .نواګرچه په آخرت كي پرې عذاب نشته.خوپه دنيا كي پرې سجده سهوه

۱) غربه الزيلعي رحمه الله ثم أخرج من حديث ابی هريرة رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ كل طلاق جائز إلا طلاق المعتوه المغلوب على [عقله] أخرجه الترمذی فی الطلاق باب ۱۵ رقم ۱۱۹۱)_



واجبيږی .بهرحال دا حديث په استدلال كي پيش كول صحيح نه دی .

وَلَنَا أَنَّهُ قَصَدَ إِيقَاعَ الطَّلَاقِ فِي مَنْكُوحَتِهِ فِي حَالِ أَهْلِيَّتِهِ زموږ دليل دا دې چې مكره پخپله منكوحه كي دَ ايقاع دَ طلاقو اراده كړې ده دَ خپل اهليت په حالت كي فَلَا يَعْرَى عَنْ قَضِيَّتِهِ دَفْعًا لِحَاجَتِهِ اعْتِبَارًا بِالطَّائِعِ نو دا اراده دَ خپلې مقتضی نه خالی نه ځی د ده د حاجت دفع كاوه په خاطر په طائع باندې قياس كول

حل اللغة* ① ايقاع: واقع كول ② الطائع: تابعدار ③ لايعرى: نه خالی كيږی ]

**تشريح:-** زموږ دليل دا دې.چه مجبور كس خپلې بی بی ته د طلاق وركولو اراده كړې ده.اوپه ده كي د خپلې ارادې نافذ كولو اهليت هم شته.نودا په قصد سره طلاق وركول به د خپلې مقتضا اوحكم نه خالی نه وی .
دې لپاره چې دعلت نه د حكم روستووالې رانشی .اوچه د مجبور كړې شوی كس حاجت پوره شی .چه د كوم ځيزنه ويرولې شوې دې.دهغې نه ورته خلاصې ملاؤ شی .اوځوك چې مجبوره كړې شوې وی .دې په هغه كس باندې قياس كولې شی .ځوك چې په خپله خوښه طلاق وركړی .(اودهغه طلاق واقع كيږی .نودده به هم واقع كيږی )

وَهَذَا لِأَنَّهُ عَرَفَ الشَّرَّيْنِ او دا ځکه چې ده دوې [دوه] بدی او پيژندې وَاخْتَارَ أَهْوَنَهُمَا نو آسانه ئې اختيار كړه پكې ،وَهَذَا آيَةُ الْقَصْدِ وَالْاِخْتِيَارِ او دا دَ قصد او اختيار علامت دې

حل اللغة* ① اهون: آسان،سپك،معمولی ② القصد: اراده ]

**تشريح:-** دا په قصد سره طلاق وركول ددې نه معلومه شوه.چه مكره ته مخكی دوې [دوه] خرابئ دی .
① يو دخپل خان يا د اندام د ضائع كيدو ② اوبله د ښځې د ضائع كيدو يعنی كه طلاق وركړی .نوښځه ئې د لاسه اوځی . او كه طلاق نه وركوی .نودده ځان هلاكيږی .نودې كس په دواړو خرابوكي آسانه يعنی طلاق غوره كړلو.چه وقوع د طلاق ده.اوپه دوو خرابو اودوو لاروكي يوه غوره كول نښانه دَ اختيار ده.نوثابته شوه.چه مكره په خپل اختيار باندې طلاق وركړې دې.بغير اختياره ئې نه دې وركړی.

إِلَّا أَنَّهُ غَيْرُ رَاضٍ بِحُكْمِهِ مګر دا چې هغه راضی نه دې دَ دې دَ حكم نه وَذَلِكَ غَيْرُ مُخِلٍّ بِهِ كَالْهَازِلِ او دا غير مخل بالطلاق دې لكه دَ هازل پشان

حل اللغة* ① مخل: خلل اچونكې ،ركاوټ راوستونكې ② الهازل: ټوقې كونكې]

**تشريح:-** البته زيات نه زيات دا وئيلې شی .چه مكره دَ طلاق د واقع په حكم راضی نه دې.خوموږ دا وايو.چه د طلاق په واقع كيدو باندې نه راضی كيدل د طلاق د واقع كيدونه مانع نه دی .مطلب دا چې بغير د خوشحالئ نه هم طلاق واقع كيږی .لكه د هازل ټوقې كس طلاق چې واقع كيږی .سره ددې نه چې دَ طلاق په واقع كيدو باندې دې راضی نه وی .

### دنشه په حالت كي طلاق وركول

وَطَلَاقُ السَّكْرَانِ وَاقِعٌ او دَ مدهوش طلاق واقع دی

**تشريح:-** په عبارت كي د سكران نه مراد هغه كس دې.چه د نشې په آخری حالت كي وی .تردې چې په مځكه اوآسمان كښې هم توپير نشی كولې.
مسئله دا ده.كه يوكس په حالت د نشه كي خپلې ښځې ته طلاق وركړلو.① نوزموږ په نيز طلاق واقع كيږی

وَاخْتِيَارُ الْكَرْخِيِّ وَالطَّحَاوِيِّ رحمهما الله أَنَّهُ لَا يَقَعُ او دَ امام كرخی او طحاوی خوښه دا ده.چه واقع به نه وی وَهُوَ أَحَدُ قَوْلَيِ الشَّافِعِيِّ رحمه الله او دا يو قول دَ امام شافعي دې لِأَنَّ صِحَّةَ الْقَصْدِ بِالْعَقْلِ ځكه چې دَ قصد صحت په عقل سره دې ،وَهُوَ زَائِلُ الْعَقْلِ فَصَارَ كَزَوَالِهِ بِالْبَنْجِ وَالدَّوَاءِ. او دغه زائل العقل دې نو دا داسې شو لكه چې دَ عقل زوال په بنګو يا دوائی سره وی

**حل اللغة:** ① **البنج:** بنگ یو ډول بوټي دي چې د هغې په استعمال سره سړي نشه کیږی ② **الدواء:** دوائی ]

**تشریح:-** اودامام کرخی اوامام طحاوی رحمهما الله خوښ مذهب دا دي.چه طلاق نه واقع کیږی .دا دامام شافعی رحمه الله قول هم دي.
دلیل دا دي.چه د قصد اوارادې د صحت لپاره عقل ضروری دي.اود نشې په حالت کې په ده کې عقل نه وی.
نودا داسې شوه لکه د عقل ختمیدل اویا په دوائې سره زائله کیدل.اوپه دې دواړو صورتونو کې په اتفاق سره طلاق نه واقع کیږئ .نودغه ډول که د نشې په حالت کې ئې طلاق ورکړلو.نوهغه به هم نه واقع کیږی.

**وَلَنَا أَنَّهُ زَالَ بِسَبَبٍ هُوَ مَعْصِيَةٌ** زموږ دلیل دا دي چې د دهٔ عقل په داسې سبب سره زائل شوي دي کوم چې گناه دي **فَجُعِلَ بَاقِيًا حُكْمًا زَجْرًا لَهُ** نو په غرض دَ زجر حکماً پاته پاتې ،**حَتَّى لَوْ شَرِبَ فَصُدِعَ وَزَالَ عَقْلُهُ بِالصُّدَاعِ** تر دې چې که دهٔ شراب اوسکل بیا ئې په سر درد شو او دَ دې په وجه ئې عقل زائل شو **نَقُولُ إِنَّهُ لَا يَقَعُ طَلَاقُهُ** نو موږ هم وایو چې دَ دهٔ طلاق به واقع نه وی

**حل اللغة:** ① **معصية:** گناه ② **صدع:** د سردرد ③ **زجر:** رټنه ،زورنه ] .

**تشریح:-** زمونږدلیل دا دي.چه ددې کس عقل په داسې سبب سره زائله شوي دي.چه هغه معصیت اوگناه ده.یعنی د شرابووغیره څکل.نودې کس ته د زورنې ور کاوه لپاره دده عقل حکماً پاته پریښولې (پریخودې) شو.اوهرکله چې حکماً دده عقل پاته پریښولې (پریخودې) شو.نوچه دې طلاق ورکړی .هغه به واقع کیږی .
هم دا وجه ده.که یوکس شراب اوڅکل.بیا دهغې د امله دهغه په سرباندې درد شو.اود سرد درد په وجه ئې عقل زائله شو.اوده خپلې ښځې ته طلاق ورکړلو.نوموږ هم دا وایو.چه دده ورکړې شوې طلاق نه واقع کیږی .
څکه چې په دې صورت کې د عقل زوال د گناه د امله نه نه دې شوې.بلکه د سرد درد په وجه شوې دي.
فوائد ،دهدایه د مصنف رحمه الله په عبارت کې تسامح دي.هغه دا چې مصنف رحمه الله د نشې په وجه دې زائل العقل گرخولې دي.حالانکه داسې نه ده.بلکه دې د شریعت د احکامو مخاطب دي.اوخطاب بغیرد عقل نه کیږی .زیات نه زیات دا وئیلی شی .چه دې مغلوب العقل دي.
خواب دا دي.چه مغلوب پشان د معدوم (نشت) وی .نوپه دې امله پرې د زوال اطلاق کړې شوې دي.والله اعلم بالصواب.

### دګونګا د طلاق حکم

**وَطَلَاقُ الْأَخْرَسِ وَاقِعٌ بِالْإِشَارَةِ** اوطلاق دَ گونګې به واقع وی په اشاره سره **لِأَنَّهَا صَارَتْ مَعْهُودَةً** څکه چې دَ دهٔ اشاره معهوده ده **فَأُقِيمَتْ مَقَامَ الْعِبَارَةِ دَفْعًا لِلْحَاجَةِ** نو د دهٔ اشاره دَ عبارت قائمقام کړې شوه دَ حاجت دفع کاوه دَ پاره **وَسَتَأْتِيكَ وُجُوهُهُ فِي آخِرِ الْكِتَابِ إِنْ شَاءَ اللَّهُ تَعَالَى** او زر به دَ دې وجوه په اخر دَ کتاب کې راشی انشاء الله تعالی

**حل اللغة:** ① گونګاه]

**تشریح:-** مسئله دا ده.چه د گونګا طلاق په اشاره سره واقع کیږی .دلیل دا دي.چه د گونګا اشاره معروفه اومشهوره ده.نودا به په دلالت کې دعبارت پشان وی .نودده په اشاره به دده نکاح،طلاق ،عتاق خرڅول اواخستل واړه صحیح وی .برابره ده که دغه گونګا په لیکلوقادر وی اوکه نه وی .② اوبعضې شوافعو رحمهم الله فرمائیلی دی .که دې په لیکلوقادر وی .نود طلاق لپاره اشاره کافی نه ده.څکه چې لیکل د کتابت په مقابله کې غوره دی .نوپه دې سره به اړتیا پوره کولې شی .

### د وینزې اواصیلې د طلاق شمار

**طَلَاقُ الْأَمَةِ ثِنْتَانِ حُرًّا كَانَ زَوْجُهَا أَوْ عَبْدًا** اودَ وینځې طلاق دوې [دوه] دی خاوند ئې ازاد وی او که غلام وی



**وَطَلَاقُ الْحُرَّةِ ثَلَاثٌ حُرًّا كَانَ زَوْجُهَا أَوْ عَبْدًا** دَ آزادې ښځې طلاق درې دی خاوند ئې آزاد وی اوکه غلام وی

**تشریح:-** د وینځو د طلاق په شمارکې د امامانواختلاف دي.① احناف رحمهم الله فرمائی .چه د طلاق په باب کښې د ښځو اعتبار دي.یعنی د وینزې دوې [دوه] طلاقه دی .که ددې خاوند آزاد وی اوکه غلام.اود اصیلې درې طلاقه دی .که خاوند ئې آزاد وی اوکه غلام.حاصل دا چې وینزه به په دوې [دوه] طلاقه مغلظه کیږی اواصیلې په دریو.

**وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رحمه الله: عَدَدُ الطَّلَاقِ مُعْتَبَرٌ بِحَالِ الرِّجَالِ** امام شافعی رحمه الله فرمائی چې په عدد دَ طلاقو کې دَ سړی حال معتبر دي

**تشریح:-** امام شافعی رحمه الله فرمائی .چه د طلاق په شمارکې به سړو لره اعتباروی .یعنی سړې که آزاد وی .نودې به خپلې بی بی ته درې طلاقه ورکوی .که ښځه ئې آزاده وی اوکه وینزه،اوکه سړې غلام وی .نودې خپلې ښځې ته د طلاق ور کاوه مجاز دي.چه خپلې ښځې ته به دوې [دوه] طلاقه ورکوی .که ښځه ئې آزاده وی اوکه وینزه وی .دا مذهب دامام مالك اوامام احمد رحمهما الله هم دي.
فائده د اختلاف په دوو صورتونوکې ښکاره کیږی .① یودا چې آزاده ښځه دغلام په نکاح کې وی .② دوهم دا چې وینزه د آزاد په نکاح کې وی .نوپه اولنی صورت کې داحنافو رحمهم الله په نیزبه درې طلاق ورکولې شی .اوپه دوهم صورت کې به دوې [دوه] طلاقه ورکولې شی .اودامام شافعی رحمه الله په نیزبه ددې په عکس وی .یعنی په اولنی صورت کې به دوې [دوه] طلاقه ورکوی اوپه دوهم کې به درې.

**لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {الطَّلَاقُ بِالرِّجَالِ وَالْعِدَّةُ بِالنِّسَاءِ}**(١) څکه چې دَ نبی علیه السلام ارشاد دې طلاق دَ سړو سره دی او عدت دَ ښځو سره

**تشریح:-** دامام شافعی رحمه الله دلیل د نبی ﷺ ارشاد دې.چه [الطلاق بالرجال والعدة بالنساء] وجه د استدلال دا ده.چه په حدیث کې د طلاق اوعتاق په مینځ کې مقابله کړې شوې ده.اوپه عدت کې په اتفاق سره د ښځو اعتباردې.یعنی که وینزه وی .نوددې عدت به دوې [دوه] حیضه وی .لکه څنګه چې احناف رحمهم الله وائی .اودوې [دوه] طهره به وی .لکه څنګه چې شوافع رحمهم الله وائی .اوکه آزاده وی .نوددې عدت به درې حیضه یا درې طهره وی .نود مقابلې ثابتولو لپاره به په طلاق کې د سړو اعتبار کولې شی .یعنی که آزاد سړې به د دریوطلاقو مالك وی .که ښځه وینزه وی اوکه آزاده.اوکه خاوند غلام وی .نود دوو طلاقو اعتباربه کولې شی .که ښځه آزاده وی اوکه وینزه.

**وَلِأَنَّ صِفَةَ الْمَالِكِيَّةِ كَرَامَةٌ** او څکه چې دَ مالك کیدو صفت کرامت دې **وَالْآدَمِيَّةُ مُسْتَدْعِيَةٌ لَهَا** او آدمیت دَ دې مقتضی دې ،**وَمَعْنَى الْآدَمِيَّةِ فِي الْحُرِّ أَكْمَلُ** اودَ آدمیت معنی په آزاد کې زیاته کا مله ده **فَكَانَتْ مَالِكِيَّتُهُ أَبْلَغَ وَأَكْثَرَ** نو دَ آزاد مالك کیدل هم زیات دی

**حل اللغة:** ① **كرامة:** عزت ② **مستدعية:** تقاضا کونکې دې]

**تشریح:-** عقلی دلیل دا دي.چه صفت دمالکیت دعزت څیزدې.نوهرهغه څیزچه دعزت سبب وی .آدمیت د هغې تقاضا کوی .څکه چې بنی آدم دالله تعالی په تکریم سره معزز اومکرم دي.الله تعالی فرمائیلی دی ((وَلَقَدْ كَرَّمْنَا بَنِي آدَمَ)) او آدمیت په آزاد سړی کې زیات کامل وی .څکه چې آزاد سړې د هغې څیزنواهلیت لری .دکوم چې غلام اهلیت نه لری .مثلاً قضاء،ولایت،اوشهادت،نوهرکله چې آدمیت په آزاد سړی کې زیات کامل دې.نوچه دې د طلاق مالك شی .د مملوك په مقابله کې زیاته بلیغه ده.امام شافعی رحمه الله فرمائی .چه آزاد سړې د درې طلاقومالك دې.اوغلام د دوو.

١) غربه الزيلعی رحمه الله مرفوعا وذكره موقوفاً على علی رضي الله عنه وعزاه إلى ابن أبی شيبة (نصب الرأية ٢٩٩/٣)_

وَلَنَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او زمونږ دلیل دَ نبی علیه السلام ارشاد دی { طَلَاقُ الْأَمَةِ ثِنْتَانِ وَعِدَّتُهَا حَيْضَتَانِ (1)} چه دَ وینځې طلاق دوې [دوه] دی او عدت ئې دوې [دوه] حیضه نه دی

تشریح:- زمونږ دلیل د نبی ﷺ ارشاد دی. [طلاق الأمة ثنتان وعدتها حیضتان] په حدیث کې په [الأمة] کې الف لام لپاره د جنس دی .نومعنی دا شوه.چه د جنس وینزې طلاق دوې [دوه] دی .اوددې عدت دوې [دوه] حیضه دی .(اګرکه خاوند ئې آزاد وی )ددې حدیث نه معلومه شوه.چه د طلاق په شمارکې ښځې معتبر دی .سړی نه دی .

وَلِأَنَّ حِلَّ الْمَحَلِّيَّةِ نِعْمَةٌ فِي حَقِّهَا او ځکه چې دَ محلیت حلالیدل نعمت دې دَ ښځې په حق کې وَلِلرِّقِّ أَثَرٌ فِي تَنْصِيفِ النِّعَمِ او رقیت ته دخل دې دَنعمتونوپه نیمولو کې إِلَّا أَنَّ الْعُقْدَةَ لَا تَتَجَزَّأُ مګر چونکه غوټه دَ طلاقو متنجزی کیږی نه فَتَكَامَلَتْ عُقْدَتَانِ په دې وجه دوې [دوه] غوټې به پوره وی

حل اللغة: ① الرق: غلامی ② تنصیف: نیمول]

تشریح:- داحنافو ﷭ عقلی دلیل دا دی.چه ښځه دنکاح محل دی.نودا ددې په حق کې نعمت دی.ځکه چې دا د نان نفقې او استوګنې وغیره مستحقه شی .اود نعمتونوپه نیم کولوکې د غلامۍ اثردی.نود قیاس تقاضا خو دا وه.چه وینزې ته صرف یونیم طلاق ورکول کافی وو.کوم چې د آزادې ښځې د طلاق نیمه ده.خوچونکه طلاق ویش نه قبلوی .نوځکه دا نیم طلاق پوره کړې شو.اودوې [دوه] طلاقونه مقرر کړې شول.

وَتَأْوِيلُ مَا رُوِيَ أَنَّ الْإِيقَاعَ بِالرِّجَالِ او تاویل دَ روایت دَ شافعی ﷫ دا دې چې طلاق واقع کول د سړو حق دې

حل اللغة: ① تاویل: مفهوم،مطلب]

تشریح:-صاحب دهدایه ﷫ دامام شافعی ﷫ د پیش کړی حدیث ځواب ورکړې دې.چه په [الطلاق بالرجال] حدیث د شوافعو ﷭ لپاره مستدل نه پاتې کیږی .

معنی [إیقاع الطلاق بالرجال] دې.یعنی طلاق ورکول د سړو په اختیار کې دی .ددې تاویل نه روسته دا [1]علامه عینی ﷫ فرمانیلی دی .چه مصنف ابن ابی شیبه په خپل مصنف کې دا روایت په ابن عباس رضی الله عنهما باندې موقوف کړې دې.اوامام طبرانی ﷫ په خپل معجم کې په ابن مسعود﷜ باندې موقوف کړې دې.اوعبدالرزاق په خپل مصنف کې په حضرت عثمان بن عفان،زید بن ثابت اوابن عباس﷢ باندې موقوف کړې دې.حاصل دا چې دا حدیث مرفوع نه دې.بلکه موقوف دې.اودشوافو ﷭ په نیز موقوف حدیث قابل استدلال نه وی .نوپه دې حدیث دامام شافعی ﷫ په خپل مذهب باندې استدلال کول صحیح نه دی .

صاحب دهدایه د امام شافعی ﷫ عقلی دلیل ذکرکړې دې.خود هغې نه ئې ځواب نه دې کړې.داحقرشاه فیصل په ذهن کې ددې عقلی دلیل نه ځواب دا دې.چه په دې دلیل کې د طلاق د مالکیت مستحق آزاد ګرځولې شوې دې.خواه که هغه ښځه وی اوکه سړې.اوکه زوج وی اوکه زوجه وی .نودا دلیل د مدلول سره مطابق نشو.ځکه چې دعوی خودا ده.چه اختیارد طلاق به سړوته وی .حالانکه د دلیل نه دا معلومیږی .چه آزاد بنیادم د طلاق مالك کیدو زیات مستحق دې.نوددې دلیل بنا (بنیاد) په اصلیت شو.اوچه بنا (بنیاد) ئې اصلیت شو.نوددې دلیل تقاضا دا ده.که ښځه وینزه وی .او خاوند آزاد وی .نو درې طلاقه دې د طلاق آخری شمار وی .اوکه ښځه آزاده وی .او خاوند غلام وی .نودوې [دوه] طلاقه دې د طلاق دشمار آخری حد وی .حالانکه دامام شافعی ﷫ دعوی دا نه ده.فافهم وتامل)۔

1) من حدیث عائشة ﵂ أخرجه أبوداود فی الطلاق باب ۶ رقم ۲۱۸۹ والترمذی فی الطلاق باب ۷ رقم ۱۱۸۲ وابن ماجه فی الطلاق باب ۳۰ رقم ۲۰۸۰ والحاکم فی المستدرک ( ۲ / ۲۵ ).



## د غلام په ښځه د مالك طلاق نه واقع کیږی

وَإِذَا تَزَوَّجَ الْعَبْدُ امْرَأَةً بِإِذْنِ مَوْلَاهُ وَطَلَّقَهَا کله چې غلام دَ یوې ښځې سره نکاح اوکړه په اجازت دَ مولی خپل او طلاقه ئې کړه وَقَعَ طَلَاقُهُ واقع شو طلاق دَ ده وَلَا يَقَعُ طَلَاقُ مَوْلَاهُ عَلَى امْرَأَتِهِ او دَ ده په ښځه دَ ده د مولی طلاق نه واقع کیږی لِأَنَّ مِلْكَ النِّكَاحِ حَقُّ الْعَبْدِ ځکه چې ملك دَ نکاح دَ غلام حق دې فَيَكُونُ الْإِسْقَاطُ إِلَيْهِ دُونَ الْمَوْلَى نو د دې ساقط کول به دَده حق وی نه چې دَ مولی دَ ده.

تشریح:- صورت د مسئلې اودلیل ئې ښکاره دې.(وضاحت ته اړتیا نشته)

# باب ایقاع الطلاق

ژباړه:- (دا) باب د طلاق واقع کولو(په بیان) کښې دې .

تشریح:- چونکه په وړاندینی باب کښې مصنف ﷫ د طلاق اصل اود سنی اوبدعی په اعتبارسره وصف طلاق بیان کړلو.ځکه اوس په دې باب کې من حیث الایقاع د طلاق انواع اواقسام بیانوی .

## صریحي اوکنائي طلاق

الطَّلَاقُ عَلَى ضَرْبَيْنِ: صَرِيحٌ، وَكِنَايَةٌ طلاق په دوې [دوه] قسمه دې.صریح او کنایه. فَالصَّرِيحُ قَوْلُهُ: أَنْتِ طَالِقٌ وَمُطَلَّقَةٌ وَطَلَّقْتُكِ نو طلاق صریح لکه دده قول [ أنت طالق،او مطلقة، او طلقتك] فَهَذَا يَقَعُ بِهِ الطَّلَاقُ الرَّجْعِيُّ نو( دا داسې الفاظ دی ) چې په دې سره طلاق رجعی واقع کیږی .

تشریح:-په عبارت کې طلاق په معنی د تطلیق دې.بهرحال د طلاق دوې [دوه] قسمونه دی .صریحی او کنایه.صریحی دې ته وائی .چه د هغې مراد بغیرد بیان نه ښکاره وی .اوکنایه هغې ته وائی .چه د هغې مراد د بیان نه بغیرښکاره نه وی .صریجی طلاق دا دې.چه خپلې ښځې ته اووائی .[أنت طالق، أنت مطلقة،یا طلقتك] په دې الفاظو سره طلاق رجعی واقع کیږی .

لِأَنَّ هَذِهِ الْأَلْفَاظَ تُسْتَعْمَلُ فِي الطَّلَاقِ ځکه چې دا الفاظ په طلاق کې مستعمل دی . وَلَا تُسْتَعْمَلُ فِي غَيْرِهِ اوبه غیرطلاق کې مستعمل نه دی . فَكَانَ صَرِيحًا نوطلاق صریح اوګرځولی شو. وَأَنَّهُ يَعْقُبُ الرَّجْعَةَ بِالنَّصِّ او ددې (طلاق صریحی ) نه روسته رجعت کیږی .په ( دلیل د) نص سره. وَلَا يَفْتَقِرُ إِلَى النِّيَّةِ او دا( صریح طلاق) د نیت محتاج نه وی . لِأَنَّهُ صَرِيحٌ فِيهِ لِغَلَبَةِ الِاسْتِعْمَالِ ځکه چې دا (لفظ) صریحی دې په دې (طلاق) کې .د امله د زیات استعمال نه

تشریح:- دلیل دا دې.چه دا الفاظ د طلاق په معنی کې استعمالیږی .په بله معنی کې نه استعمالیږی .نودا الفاظ د طلاق صریحی په معنی کې دی .اود طلاق صریحی نه روسته د دې آیت مطابق ((وَبُعُولَتُهُنَّ أَحَقُّ بِرَدِّهِنَّ)) رجعت ثابتیږی . اوطلاق صریحی د نیت محتاج هم نه وی .ځکه چې د طلاق په معنی کې دا الفاظ د زیات استعمال د امله صریحی دی .حاصل دا چې نیت وی د مبهم د تعین دپاره.اود دې الفاظو په دلالت کې څه ابهام نشته.نودا الفاظ په خپله معنی باندې په دلالت کولوکې د نیت محتاج نه دی .

وَكَذَا إِذَا نَوَى الْإِبَانَةَ اودغه ډول حکم دی.کله چې ده اراده کړې وی د طلاق بائن. لِأَنَّهُ قَصَدَ تَنْجِيزَ مَا عَلَّقَهُ الشَّرْعُ بِانْقِضَاءِ الْعِدَّةِ ځکه چې ده د هغه شی بالفعل کاوه اراده کړې ده.کوم چې شریعت په عدت تیریدلو پورې معلق کړې دې فَيُرَدُّ عَلَيْهِ نو دده اراده به هم دده اړخ.ته ګرځولې شی .

حل اللغة: ① الابانة: جدائی ② تنجیز: جاری کول]

تشریح:-دغه ډول به په دې صورت کې هم طلاق رجعی ثابتیږی .که خاوند په دې صریحی الفاظوسره د بائن نیت کړې وی .

ⓐدليل دا دې.چه دې كس دهغه څيزبالفعل د كولواراده كړې ده.كوم چې شريعت د عدت په تيريدوپورې معلق كړې دې.يعنى شريعت په صريحې طلاق كې د بينونت اعتبارد عدت تيريدو نه روسته كړې دې.اوده اعتباراوكړلو.چه فى الحال بينونت (جدائى) واقع شي .نودده قصد اواعتبار به د شريعت د مخالفت په وجه التهه هم دده په مخ باندې ورغورځولې شي .

وَلَوْ نَوَى الطَّلَاقَ عَنْ وِثَاقٍ اوكه نيت ئيگ كوئيگ وو د خلاصى د هتكوو نه لَمْ يُدَيَّنْ فِي الْقَضَاءِ نو دده تصديق به نشي كوليگ د قضاء په اعتبار سره لِأَنَّهُ خِلَافُ الظَّاهِرِ ځكه دا قول د ظاهر خلاف دي وَيُدَيَّنُ فِيمَا بَيْنَهُ وَبَيْنَ اللَّهِ تَعَالَى اوتصديق به ئې كولې شي د ده او د الله په مينځ كې لِأَنَّهُ نَوَى مَا يَحْتَمِلُهُ .ځكه چې ده نيت كړې دې د هغه معنى چې لفظ د هغې احتمال لرى

تشريح:- كه ده [أنت طالق] اوئيل.اونيت ئې په كې د بيړو نه دخلاصى وى .نود قضا په اعتبار سره دده تصديق نشي كولې.البته د ديانت په اعتبار سره ئې تصديق كولې شي .په دې اړه كې اصل دا دې.كه يو كلام د يوې معنى احتمال لرى .خوهغه معنى د ظاهرخلاف وى .نوكه متكلم په خپل كلام سره د دغه معنى نيت كړې وى .نود قضا په اعتبارسره به دده تصديق نشي كولې.خوچونكه دا كلام ددغه معنى احتمال لرى .ددې امله به د ديانت په اعتبار يعنى دالله تعالى اودده په مينځ كې چې معامله پريښبولې (پريخودې) شى .دده به تصديق كولې شى .

وَلَوْ نَوَى بِهِ الطَّلَاقَ عَنِ الْعَمَلِ اوكه د عمل نه ئې د خلاصى نيت اوكړو لَمْ يُدَيَّنْ فِي الْقَضَاءِ نونه به قضاء تصديق كولې شي . وَلَا فِيمَا بَيْنَهُ وَبَيْنَ اللَّهِ تَعَالَى ونه به ديانةً في ما بينه وبين الله (تصديق كيږى لِأَنَّ الطَّلَاقَ لِرَفْعِ الْقَيْدِ ځكه چې طلاق رفع د قيد لپاره وى وَهِيَ غَيْرُ مُقَيَّدَةٍ بِالْعَمَلِ اودا ښځه په عمل سره مقيد نه ده

تشريح:- كه [أنت طالق] سره ئې د [طلاق عن العمل] يعنى د كارنه د خلاصيدو نيت كړې وى .نونه به ئې قضاءً تصديق كولاى شى اونه ديانةً ځكه چې دده د كلام د [أنت طالق عن العمل] هډو احتمال نه لرى .نوكلام چې د كومې معنى احتمال نه لرى .هغه معنى به معتبره نه وى .

ⓑپاتې شوه دا خبره چې [أنت طالق] د [أنت طالق عن العمل] احتمال ولې نه لرى .نوددې وجه دا ده.چه طلاق د نكاح قيد پورته كوى .اودنكاح قيد داسې قيد دې.چه مقيد بالعمل نه دې.[يعنى د نكاح د لوازماتو نه دا نه دى .چه ته به كارهم كوې)نو طلاق به دعمل د قيد ختمولو لپاره نه وى .

وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله أَنَّهُ يُدَيَّنُ فِيمَا بَيْنَهُ وَبَيْنَ اللَّهِ تَعَالَى اود ابوحنيفه رحمه الله نه روايت دې.چه فيما بينه وبين الله به تصديق كولې شى .لِأَنَّهُ يُسْتَعْمَلُ لِلتَّخْلِيصِ ځكه چې دا (كلام) په خلاصولو كې استعمالولې شى

حل اللغة: ① التخليص.خلاصول]

تشريح:-دامام ابوحنيفه رحمه الله نه يو روايت دا هم دې.چه ديانةً به دده په [طلاق عن العمل] كې كولې شى .د دې روايت دليل دا دې.چه د طلاق لفظ د خلاصى په معنى كې مستعمل دې.نود [أنت طالق] معنى به وى [أنت مخلصة عن العمل].

## ښځې ته د [أنت مطلقة] په لفظ سره طلاق وركول

وَلَوْ قَالَ: أَنْتِ مُطْلَقَةٌ بِتَسْكِينِ الطَّاءِ اوكه وې وئيل، انت مطلقة،په سكون د ،طاء، سره. لَا يَكُونُ طَلَاقًا إِلَّا بِالنِّيَّةِ نو(دا) طلاق به نه (واقع) كيږى .مگر په نيت سره (به واقع كيږى )

تشريح:- كه يوكس خپلې ښځې ته [أنت مطلقة] د طاء په سكون لام په فتح سره اووئيل.نوبغيرد نيته په دې سره طلاق نه واقع كيږى .البته په نيت دطلاق سره طلاق واقع كيږى .



لِأَنَّهَا غَيْرُ مُسْتَعْمَلَةٍ فِيهِ عُرْفًا ځكه چې دا لفظ (د معنى په لحاظ سره) عرفاً په طلاق كې مستعمل نه دې فَلَمْ يَكُنْ صَرِيحًا نو(دا لفظ په طلاق كې) صريحى نشو.

تشريح:-دليل دا دې.چه دا لفظ د عرف په اعتبارسره د طلاق په معنى كې مستعمل نه دې.نودا لفظ صريحى طلاق نشو.خوچونكه په دې لفظ سره مقصود دطلاق حاصليږى .نوځكه كه د طلاق نيت موجود شى نوطلاق به واقع كيږى .

## په [أنت طالق،طلقتك، يا مطلقة، سره طلاق وركول

قَالَ (مصنف رحمه الله) فرمائى وَلَا يَقَعُ بِهِ إِلَّا وَاحِدَةٌ وَإِنْ نَوَى أَكْثَرَ مِنْ ذَلِكَ او نه واقع كيږى .(په ذكر شوى درې واړه لفظونوكې په هر يو) مگر يو( طلاق) اگرچه ددې نه ئې د زياتى نيت كړې وى

تشريح:- د [لا يقع به إلا واحدة] تعلق د وړاندينى عبارت [فهذا يقع به الطلاق الرجعى] سره دې.① اوس حاصل د مسئلې دا شو.چه په دې الفاظو[أنت طالق،مطلقة،طلقتك] سره به طلاق رجعى واقع كيږى .اويه دې درې واړه الفاظوكې به په هريوسره صرف يو طلاق واقع كيږى .اگرچه د يو نه د زياتو نيت ئې كړې وى .دا خو زمونږ مذهب دې.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رحمه الله يَقَعُ مَا نَوَى او امام شافعى رحمه الله فرمائى .چه د كوم نيت ئې كړې دې.هغه به واقع كيږى لِأَنَّهُ مُحْتَمَلُ لَفْظِهِ ځكه چې مانوى ددې د لفظ محتمل دې.: فَإِنَّ ذِكْرَ الطَّالِقِ ذِكْرٌ لِلطَّلَاقِ لُغَةً كَذِكْرِ الْعَالِمِ ذِكْرٌ لِلْعِلْمِ.ځكه چې د طالق ذكر لغةً د طلاق ذكر دې.لكه چې د عالم ذكر كول د علم ذكر كول دى . وَلِهَذَا يَصِحُّ قِرَانُ الْعَدَدِ بِهِ اوهم په دې وجه ددې سره عدد متصل كول صحيح دى . فَيَكُونُ نَصْبًا عَلَى التَّمْيِيزِ نو وى به ( لفظ د ثلاثاً) منصوب د تميز په بناء باندې.

تشريح:- اوامام شافعى رحمه الله مذهب دا دې.چه د څومره طلاقونو نيت ئې كړې وى .كه دوې [دوه] وى اوكه درې.هم هغه هومره به واقع كيږى .هم دا قول دامام مالك اوامام زفراو په يو قول كې دامام احمد رحمه الله هم دې.

ⓐدامام شافعى رحمه الله دليل دا دې.چه دا كس د يويا دوؤ يا دريودكوم نيت هم اوكړى .دا لفظ د هغې احتمال لرى .چونكه د صفت د صيغې [طالق] ذكر كول د [طلاق] ذكركول دى .نوځكه به ددې صيغې صفت بغيرد مشتق منه نه واقع كيږى نه.لكه څنگه چې لفظ د عالم وئيل د علم وئيل دى .حاصل دا چې لفظ د [طالق] په مصدرباندې مشتمل دې.اومصدر په اتفاق سره د يواود يونه د زيات احتمال لرى .اوچونكه د طالق ذكر دهغه طلاق ذكردې.چه هغه د قليل اوكثيردواړو احتمال لرى .نوځكه د طالق لفظ سره د عدد يوځائې كول صحيح دى .هم دا وجه چې وئيلى شى .[أنت طالق ثلاثاً] اودا لفظ د [ثلاثاً] بناء برتميز منصوب دې.اود تميزحاصل دې د لفظ په محتملاتوكې د يوتعيين كول.نو لنډيز دا شوه.چه لفظ د طالق د قليل اوكثيردواړو احتمال لرى .نوپه دوو او دريوكې چې د كوم عدد نيت اوكړى .نودده د كلام محتمل به وى اودكلام د محتمل نيت كول شرعاً معتبردي.

وَلَنَا أَنَّهُ نَعْتُ فَرْدٍ حَتَّى قِيلَ لِلْمُثَنَّى طَالِقَانِ وَلِلثَّلَاثِ طَوَالِقُ او زمونږ دليل دادې.چه (لفظ د طالق) نعت فرد دې.تردې چې د دوې [دوه] لپاره ،طالقان،او د دريو دپاره، طوالق، وئيلې شي فَلَا يَحْتَمِلُ الْعَدَدَ نود عدد احتمال به نه كيږى لِأَنَّهُ ضِدُّهُ ځكه چې (فرد) ددې ضد دې

تشريح:-اوزمونږ دليل دا دې.چه لفظ د طالق لغت فرد دې.ځكه چې دا د يوې ښځې صفت دې.هم دا وجه ده چې د دوو لپاره طالقان اود دريو لپاره طوالق وئيلى شى .اوهرهغه لفظ چې لغت فرد وى .هغه د عدد احتمال نه لرى .ځكه چې عدد د فرد ضد دې.اويوڅيزد خپل ضد احتمال نه لرى .نوپه [أنت طالق] سره به د دوو يا د دريوطلاقونو نيت كول صحيح نه وى .

**وَذِكْرُ الطَّالِقِ ذِكْرٌ لِطَلَاقٍ هُوَ صِفَةٌ لِلْمَرْأَةِ لَا لِطَلَاقٍ هُوَ تَطْلِيقٌ** اود طالق ذکر کول دداسې طلاق ذکر کول دی .کوم چې د ښځې صفت دې.د هغه طلاق ( صفت) نه دې.کوم چې ( د تطلیق ( په معنی کې ) دې

**تشریح:-** دامام شافعي رحمه الله د دلیل نه ځواب دا دې.چه بیشکه لفظ د [طالق] صیغه د صفت ده.په مصدردلالت کوی .خودا هغه طلاق دې.چه د ښځې صفت دې.(یعنی واقع کیدل د طلاق) هغه طلاق نه دې کوم چې د تطلیق په معنی وی .اود خاوند فعل دې.اود عدد احتمال د طلاق په هغه لفظ کې شته.کوم چې د تطلیق په معنی کې وی .په هغه کې ئې احتمال نشته.چه د ښځې په صفت کې وی .نوپه ذکرد طالق سره په ذکرالطلاق باندې استدلال صحیح نه دې.

**وَالْعَدَدُ الَّذِي يُقْرَنُ بِهِ نَعْتٌ لِمَصْدَرٍ مَحْذُوفٍ** او هغه عدد کوم چې ددې سره مقترن دې.د مصدر محذوف صفت دې. **مَعْنَاهُ طَلَاقًا ثَلَاثًا كَقَوْلِكَ أَعْطَيْتُهُ جَزِيلًا: أَيْ عَطَاءً جَزِيلًا** ددې معنی ده.طلاقاً ثلاثاً ، لکه ستا قول چې [ أعطیته جزیلاً] یعنی [ إعطاءً جزیلاً].

**حل اللغة:** ① **یقترن:** مولښتی کیږی ② **نعت:** صفت ③ **عطاء:** هدیه،ډالۍ ]

**تشریح:-** اودامام شافعي رحمه الله دا قول چې د لفظ طلاق سره عدد مقترن وی .ددې ځواب دا دې.چه په [أنت طالق ثلاثاً] کې عدد محذوف مصدر صفت دې.تمیزتقدیری نه دې.نوتقدیر د عبارت دا شو.چه [أنت طالق طلاقاً ثلاثاً] اودا داسې دې.لکه چې یو کس اووائی .[أعطیته جزیلاً] یعنی [أعطاء جزیلاً]

## د طلاق د مختلفو الفاظو ذکر

**وَلَوْ قَالَ: أَنْتِ الطَّلَاقُ أَوْ أَنْتِ طَالِقٌ الطَّلَاقَ أَوْ أَنْتِ طَالِقٌ طَلَاقًا،** اوکه وې وئیل.[ أنت الطلاق، یا أنت طالق الطلاق، یا أنت طالق طلاقاً] **فَإِنْ لَمْ تَكُنْ لَهُ نِيَّةٌ أَوْ نَوَى وَاحِدَةً أَوْ ثِنْتَيْنِ** نوکه دده هیڅ نیت نه وی .یا ئې د یو نیت وی .یا د دوه (نیت ئې وی ) **فَهِيَ وَاحِدَةٌ رَجْعِيَّةٌ** نو دا یو ( طلاق) رجعي دې. **وَإِنْ نَوَى ثَلَاثًا فَثَلَاثٌ** اوکه د دریو نیت ئې کړې وی .نو درې دی

**تشریح:-** په عبارت کې د طلاق درې الفاظ ذکردی .په دې درې واړه صورتونوکې که ئې د څه نیت نه وی کړې.یا ئې د یو یا د دوو طلاقو نیت کړې وی .نوطلاق رجعي به واقع کیږی .اوکه د دریونیت ئې کړې وی .نودرې به واقع کیږی .

**وَوُقُوعُ الطَّلَاقِ بِاللَّفْظَةِ الثَّانِيَةِ وَالثَّالِثَةِ ظَاهِرٌ** او د طلاق واقع کیدل، دوهم او دریم لفظ سره ښکاره دی **لِأَنَّهُ لَوْ ذَكَرَ النَّعْتَ وَحْدَهُ** ځکه که ده صرف لغت ( صفت) ذکر کړې وې **يَقَعُ بِهِ الطَّلَاقُ** نو په دې سره به طلاق واقع کیدلو **فَإِذَا ذَكَرَهُ** نو کله ئې چې دا ذکرکړل. **وَذَكَرَ الْمَصْدَرَ مَعَهُ** او ددې سره ئې مصدر ذکرکړو **وَأَنَّهُ يَزِيدُهُ وَكَادَةً أَوْلَى** حالانکه مصدر په دې کې د قوت اضافه کوی نو په درجه اولی به ( واقع) کیږی

**حل اللغة:** ① **وکادة:** قوت،تاکید]

**تشریح:-** صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی .چه په دوهم لفظ چې [أنت طالق الطلاق] اوپه دریم لفظ [أنت طالق طلاقاً] باندې د طلاق واقع کیدل ښکاره دی .ځکه که دې کس صرف صیغه د صفت [طالق] ذکرکړې وه.نوهم به یوطلاق واقع کیدلو.خوچه ده ورسره هم ذکرکړلوحالانکه مصدر د صفت تاکید کوی .نوپه دې صورت کې خوبه خامخا طلاق واقع کیږی .

**وَأَمَّا وُقُوعُهُ بِاللَّفْظَةِ الْأُولَى** او بهرحال د طلاق واقع کیدل په رومبی لفظ سره **فَلِأَنَّ الْمَصْدَرَ قَدْ يُذْكَرُ** نو ددې لپاره مصدر ذکرکولې شی . **وَيُرَادُ بِهِ الِاسْمُ، يُقَالُ: رَجُلٌ عَدْلٌ: أَيْ عَادِلٌ** او ددې نه مراد اسم وی .وئیلې شی ، رجل عدل، یعنی ، عادل، **فَصَارَ بِمَنْزِلَةِ قَوْلِهِ أَنْتِ طَالِقٌ** نو( دا) به د، انت طالق، په مرتبه کې وی **وَعَلَى هَذَا لَوْ قَالَ: أَنْتِ طَلَاقٌ** او هم په دې بنا (بنیاد) که،انت طالق، ئې اووئیل. **يَقَعُ بِهِ الطَّلَاقُ أَيْضًا** نو په دې سره به هم طلاق واقع





کیږی . **وَلَا يَحْتَاجُ فِيهِ إِلَى النِّيَّةِ** او په دې کې د نیت محتاج نه وی . **وَيَكُونُ رَجْعِيًّا لِمَا بَيَّنَّا** او ( طلاق) رجعي به وی د هغه په وجه کوم چې موږ بیان کړل. **أَنَّهُ صَرِيحُ الطَّلَاقِ لِغَلَبَةِ الِاسْتِعْمَالِ فِيهِ** چې دا صریح الطلاق دې.( د طلاق په معنی کې ) د زیات استعمال په وجه. **وَتَصِحُّ نِيَّةُ الثَّلَاثِ** اود دریو ( طلاقونو) نیت کول به صحیح وی

**تشریح:-** اوپه اولنی لفظ یعنی [أنت طلاق] باندې طلاق ځکه واقع کیږی .چه بعضې وخت ذکرد مصدر اوشی اومراد ترې اسم وی .لکه په [رجل عدل] کې د عدل نه مراد عادل دې.دغه ډول دلته د طلاق مصدر نه طالق مراد اخستلې شی .نو[أنت الطلاق] د [أنت طالق] پشان شو. اوچونکه په [أنت طالق] باندې طلاق واقع کیږی .نوپه [أنت الطلاق] باندې به هم واقع کیږی .

① دلته یواعتراض کیداې شی .هغه دا چې [أنت الطلاق] د [أنت طالق] په کې شو.نوبیا پکار دا ده.چه په دې کې د دریوطلاقو نیت صحیح نشی .لکه څنګه چې په [أنت طالق] کې نه صحیح کیږی .

② ځواب،په طالق کې د دریونیت کول ددې د لغت فرد د امله نه صحیح کیږی . اوپاتې شو لفظ د طلاق نو دا د اصل په اعتبارسره مصدر دې.نولفظ د [الطلاق] په هراعتبارسره د طالق په مرتبه کې نه دې. او[أنت الطلاق] د طلاق په واقع کیدوکې د بیان محتاج هم نه دې.اودلته چې کوم طلاق واقع کیږی .هغه به طلاق رجعي وی .ځکه چې د طلاق په معنی کې د زیات استعمال د امله دا طلاق صریحی دې.اوپه طلاق صریحی سره طلاق رجعي ثابتیږی .اودنیت محتاج نه وی .

**لِأَنَّ الْمَصْدَرَ يَحْتَمِلُ الْعُمُومَ وَالْكَثْرَةَ** ځکه چې مصدر د عموم او کثرت احتمال لری . **لِأَنَّهُ اسْمُ جِنْسٍ** ځکه چې ( مصدر) اسم جنس دې **فَيُعْتَبَرُ بِسَائِرِ أَسْمَاءِ الْأَجْنَاسِ** نو په واړه اسماءِ اجناس باندې به قیاس کولې شی . **فَيَتَنَاوَلُ الْأَدْنَى مَعَ احْتِمَالِ الْكُلِّ،** نو ادنی ته به ګډ وی .د کُل احتمال سره

**تشریح:-** صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی .که خاوندد دریو طلاقونو نیت کړې وی .نوپه دې ذکرشوو الفاظوکې به په هر یو سره درې طلاقه واقع کیږی .

دلیل دا دې.چه په درې واړه الفاظوکې مصدر دې.اومصدرد عموم اوکثرت احتمال لری .ځکه چې مصدر اسم جنس دې.نودا به په ټولواسماء اجناس باندې قیاس کولې شی .نومصدر به ادنی (یو) ته ګډ وی .اود کل احتمال به هم لری .

**وَلَا تَصِحُّ نِيَّةُ الثِّنْتَيْنِ فِيهَا** او په دې ( ذکرشوې الفاظوکې ) به د دوې [دوه] ( طلاقونو) نیت صحیح نه وی . **خِلَافًا لِزُفَرَ** رحمه الله د امام زفر رحمه الله اختلاف دې **هُوَ يَقُولُ إِنَّ الثِّنْتَيْنِ بَعْضُ الثَّلَاثِ** هغه فرمائی .چه دوې [دوه] د دریو بعض دې **فَلَمَّا صَحَّتْ نِيَّةُ الثَّلَاثِ صَحَّتْ نِيَّةُ بَعْضِهَا ضَرُورَةً.** نو هرکله چې د دریو نیت صحیح دې.نو ددې د بعض نیت به ضرور صحیح وی .

**تشریح:-** ① خوکه په دې الفاظوکې ئې د دوو طلاقو نیت اوکړلو.نوزموږ په نیز نه صحیح کیږی . ② اودامام زفر رحمه الله په نیزصحیح کیږی .دامام زفر رحمه الله دلیل دا دې.چه دوې [دوه] طلاقه د دریوجزء دې.نوهرکله چې د کل (دریو) نیت صحیح کیږی .نود جزء چې دوې [دوه] دی .ددې به هم صحیح کیږی .

**وَنَحْنُ نَقُولُ: نِيَّةُ الثَّلَاثِ إِنَّمَا صَحَّتْ لِكَوْنِهَا جِنْسًا** او موږ ځواب ورکوو.چه د دریو نیت ځکه صحیح دې.چه هغه (کُل) جنس دې **حَتَّى لَوْ كَانَتِ الْمَرْأَةُ أَمَةً تَصِحُّ نِيَّةُ الثِّنْتَيْنِ بِاعْتِبَارِ مَعْنَى الْجِنْسِيَّةِ** تردې که ښځه وینځه وه.نود دوې [دوه] نیت به د جنسیت معنی اعتبار کاوه سره صحیح کیدلو **أَمَّا الثِّنْتَانِ فِي حَقِّ الْحُرَّةِ فَعَدَدٌ** بهرحال دوې [دوه] د آزاد په حق کې عدد دې **وَاللَّفْظُ لَا يَحْتَمِلُ الْعَدَدَ** او لفظ د عدد احتمال نه لری . **وَهَذَا لِأَنَّ مَعْنَى التَّوَحُّدِ يُرَاعَى فِي أَلْفَاظِ الْوُحْدَانِ** او ځکه چې په الفاظ وحدان کې خود وحدت معنیٰ ملحوظ ده **وَذَلِكَ بِالْفَرْدِيَّةِ أَوِ الْجِنْسِيَّةِ** اودا ( توحد به حاصلیږی ) په فردیت یا جنسیت سره. **وَالْمُثَنَّى بِمَعْزِلٍ مِنْهُمَا** او مثنی ددې دواړو نه جلا ده.

**حل اللغة*** ① **التوحد**: یوالي ② **مراعا**:لحاظ ساتلې شوې ③ **معزل**:جدا شوې]

**تشریح**:- زموږ دلیل دا دی.چه مصدر اسم جنس دی.اود اسم جنس دوې [دوه] فرد وی .یوفرد حقیقی اوبل فرد حکمی .فرد حقیقی یوطلاق دی.اوفرد حکمی د کل مجموعه یعنی درې طلاقه دی .اود دوو عدد نه د لفظ فرد حقیقی دی اونه فرد حکمی .نوکه خاوند د دریوطلاقو نیت اوکړلو.نودا به د فرد حکمی د طلاقه صیحیح وی . نوکه ښځه وینزه وی .نوددې په حق کې د دوو طلاقو نیت هم صحیح دی. ځکه چې دوې [دوه] طلاقه د وینزې په حق کې کل جنس یعنی فردحکمی دی.اود آزادې ښځې په حق کې د دوو عدد صرف عدد دی.اومصدر د عدد احتمال نه لری .ځکه چې مصدر د الفاظ وحدان ځنی دی.اوپه الفاظ وحدان کې د توحد د معنی خیال ساتلې شی .اود توحد معنی د فرد حقیقی سره متحقق کیږی اویا د فرد حکمی یعنی دریو سره.اود دوو عدد ددې دواړونه جلا دی.ځکه چې دا نه فرد حقیقی دی اونه فرد حکمی دی .

## په [أنت طالق الطلاق] سره د دوو طلاقونیت کول

| |
|---|
| **وَلَوْقَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ الطَّلَاقَ** اوکه یو کس اووئیل،انت طالق الطلاق، **فَقَالَ: أَرَدْتُ بِقَوْلِي طَالِقٌ وَاحِدَةً** او وئیل.چه ما پخپل قول طالق سره د یو طلاق اراده کړې ده. **وَبِقَوْلِي الطَّلَاقَ أُخْرٰى يُصَدَّقُ** او وې سره مې د دویم( طلاق اراده کړې ده) نو تصدیق به کولې شی. **لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا صَالِحٌ لِلْإِيقَاعِ** ځکه چې دې کې هر یو( لفظ د طلاق) واقع کاوه صلاحیت لری. **فَكَأَنَّهُ قَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ وَطَالِقٌ** نو ګویا ده اووئیل،.انت طالق وطالق، **فَتَقَعُ رَجْعِيَّتَانِ إِذَا كَانَتْ مَدْخُولًا بِهَا**. نو دوې [دوه] رجعی به واقع کیږی .کله چې دا( ښځه مدخول بها وی . |

**تشریح**:- صورت د مسئلې ښکاره دی.دلیل دا دی.چه لفظ د طالق اوالطلاق په دواړوکې هریو د طلاق واقع کیدو صلاحیت لری .نوکه دغه ښځه غیرمدخول بها وی .نوپه اولنی لفظ د [طالق] سره به بائنه شی .او دوهم لفظ به لغو شی .اوکه مدخول بها وی .نودوې [دوه] رجعی طلاقونه به واقع شی .یوپه لفظ د طالق سره اوبل په لفظ دطلاق سره.په تقدیرد مبتدا تقدیرد عبارت به داسې شی .[أنت طالق أنت الطـلاق] لکه څنګه چې د [أنت طالق وطالق] تقدیری عبارت دی.[أنت طالق وأنت طالق].

## ښځې یاد هغې یواندام ته د طلاق نسبت کول

| |
|---|
| **وَإِذَا أَضَافَ الطَّلَاقَ إِلٰى جُمْلَتِهَا** او کله چې ( سړی ) طلاق منسوب کړو.کُل ښځې اړخ ته **أَوْ إِلٰى مَا يُعَبَّرُ بِهِ عَنِ الْجُمْلَةِ** یا هغه جزء اړخ ته په کوم سره چې کُل تعبیر کولای شی **وَقَعَ الطَّلَاقُ** نو طلاق به واقع کیږی **لِأَنَّهُ أُضِيفَ إِلٰى مَحَلِّهِ** ځکه چې طلاق خپل محل اړخ ته منسوب کړې شوې دې |

**تشریح**:صاحب دقدوری رحمه الله یوه ضابطه ذکرکړې ده.هغه دا که دطلاق نسبت ټولې ښځې یا د هغې یواندام ته اوکړې شی .چه د هغې په واړه بدن پرې اطلاق کیداې شی .نوپه دې باندې طلاق واقع کیږی .ځکه چې په دې صورت کې طلاق خپل محل یعنی ښځې اړخ ته منسوب شوې دی.

| |
|---|
| **وَذٰلِكَ مِثْلَ أَنْ يَقُولَ أَنْتِ طَالِقٌ** اودا مثلاً اووائی ،.انت طالق، **لِأَنَّ التَّاءَ ضَمِيرُ الْمَرْأَةِ** ځکه چې ،ت، د ښځې ضمیر دی **أَوْ يَقُولَ رَقَبَتُكِ طَالِقٌ أَوْ عُنُقُكِ طَالِقٌ أَوْ رَأْسُكِ طَالِقٌ أَوْ رُوحُكِ أَوْ بَدَنُكِ أَوْ جَسَدُكِ أَوْ فَرْجُكِ أَوْ وَجْهُكِ**. یا اووائی .ستا سټ طلاق والا دی.یا ستا عنق طلاق والا دی.یا ستا سر طلاق والا دی.یا ستا روح، یا ستا بدن، یا ستا جسد(جسم)یاستا شرمګاه یا ستا مخ ( طلاق والا دی). **لِأَنَّهُ يُعَبَّرُ بِهَا عَنْ جَمِيعِ الْبَدَنِ** ځکه چې په دې الفاظو سره د پوره بدن تعبیر کولې شی |

**حل اللغة*** ① **رقبتة**: څټ ② **عنق**: څټ ③ جمیع ټول]

**تشریح**:- ټولې ښځې ته د منسوب کولومثال به دا وی .چه [أنت طالق] ځکه چې [تا] د ښځې



ضمیر دی.اوددې نه ټوله ښځه مراد اخستې شی .اوجزء اړخ ته د منسوب کولومثالونه [رقبتك طالق] تراخره پورې.

| |
|---|
| **أَمَّا الْجَسَدُ وَالْبَدَنُ فَظَاهِرٌ**،بهرحال جسد او بدن خو ښکاره دی **وَكَذَا غَيْرُهُمَا** اوهم دغه ډول ددې دواړو نه علاوه. **قَالَ اللّٰهُ تَعَالٰى فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ** فرمائیلې دی ((**فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ**)) یعنی آزادول د یو سټ، **وَقَالَ فَظَلَّتْ أَعْنَاقُهُمْ لَهَا خَاضِعِينَ** او فرمائیلی ئې دی .((**فَظَلَّتْ أَعْنَاقُهُمْ**)) یعنی خاضعین ( عاجزی کونکی ) هغه خلګ دی .څوك چې خضوع کونکی دی |

**تشریح**:- صاحب دهدایه رحمه الله فرمائیلی دی .چه په دې ذکرشوو الفاظو سره د واړه بدن نه تعبیرکولې شی .په جسد او بدن سره د واړه بدن نه تعبیر کول خوښکاره دی .اودغه ډول ددې دوو نه علاوه په نورو ذکرشوو الفاظو سره هم د واړه بدن نه تعبیر کولې شی .

① مثلاً په قرآن پاك کې دی .((**فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ**)) په آیت کې صرف رقبه مراد نه ده.بلکه ذات مراد دی.

② اوفرمائیلی ئې دی .((**فَظَلَّتْ أَعْنَاقُهُمْ لَهَا خَاضِعِينَ**)) په آیت کې صرف اعناق مراد نه دی.بلکه ذوات اواشخاص مراد دی .ځکه که صرف اعناق مراد وې.نود ((**لَهَا خَاضِعِينَ**) ) په ځائې به ئې [لها خاضعة] وئیلې وې.

| |
|---|
| **وَقَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ { لَعَنَ اللّٰهُ الْفُرُوجَ عَلَى السُّرُوجِ }**[1]او نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی ..لعنت دې اوکړی .الله تعالی په هغه شرمګاهونو باندې،کوم چې په زینونو( ګدو) باندې دی |

**حل اللغة*** ① **الفروج**: جمع د فرج، د ښځې شرمګاه ② **السروج**: جمع د سرج، ګډه ،زین]

**تشریح**:- نبی ﷺ فرمائیلی دی .[لعن الله الفروج علی السروج] په دې حدیث کې صرف فروج مراد نه دی .بلکه د فروجوخاوندانې مراد دی .ځکه چې لعنت په فرج نه کیږی .بلکه په ذات کیږی .دا حدیث غریب دی.خوددې په معنی یوبل حدیث شته.③ [عن ابن عباس رضی الله عنهما قال نهی رسول الله ﷺ ذوات الفرج أن یرکبن السروج]

| |
|---|
| **وَيُقَالُ فُلَانٌ رَأْسُ الْقَوْمِ وَيَا وَجْهَ الْعَرَبِ** او وئیلی شی .فلانې سړې راس القوم دی.او وجه العرب **وَهَلَكَ رُوحُهُ بِمَعْنٰى نَفْسُهُ** اود هغه ذات هلاك شو.**وَمِنْ هٰذَا الْقَبِيلِ الدَّمُ فِي رِوَايَةٍ** او ددې قبیلې ځنې په یو روایت کې دم ( وینه) ده. **يُقَالُ دَمُهُ هَدَرٌ وَمِنْهُ النَّفْسُ وَهُوَ ظَاهِرٌ** وئیلې شی .چه دده وینه فضول ده.او هم ددې قبیلې ځنې ( لفظ د) نفس دی.اودا ښکاره دی. |

**حل اللغة*** ① **هدر**: ضائع]

**تشریح**:- وئیلی شی .[فلان رأس القوم] یعنی [أکبرهم]⑥ او[وجه العرب] یعنی [أوجههـم] په دې دواړو مقولوکې صرف سر او صرف وجه مراد نه ده.بلکه ذات اوکس مراد دی.⑥ او ددې دواړو مقولونه زیات ښکاره دلیل دا دی.چه د دعا په موقع وئیلی شی .[یعیش رأسك] ښکاره ده.چه د ژوند دعا صرف د اندام لپاره نه کیږی .بلکه د واړه ذات لپاره کیږی .اود [وجه] نه ذات مراد اخستلو لپاره دالله تعالی په دې قول [**وَيَبْقٰى وَجْهُ رَبِّكَ ذُو الْجَلٰلِ وَالْإِكْرَامِ**] استدلال کولې شی .⑧ اوپه[هلك روحـه] کې صرف روح مراد نه دی.بلکه پوره ذات مراد دی.په یوروایت کې دم هم ددې ځنی دی.یعنی په یوروایت کې په دم سره د واړه بدن نه تعبیر کولې شی .وئیلی شی .[دمه هدر] نوکه [دم طرف] ته طلاق منسوب کړی .طلاق به واقع کیږی .اویو روایت دا دی.چه دم ته په طلاق منسوب کاوه سره طلاق نه واقع کیږی .اولفظ د [نفس] هم ددې باب سره تعلق ساتی .چه دې

[1]) قال الزیلعی رحمه الله تعالی فی هذا الحدیث قلت غریب جداً ثم ذکر حدیث ابن عباس رضی الله عنهما قال نهی رسول الله ﷺ ذوات الفروج أن یرکبن السروج ( نصب الرأیة ۳ / ۳۰۲ ) .

ارخ ته طلاق منسوب کولوباندې طلاق واقع کیږی .اودا خبره ښکاره ده.ځکه چې د نفس نه مراد هم ذات
وی .والله اعلم بالصواب.

## جزء شائع ته دطلاق نسبت کول

| | |
|---|---|
| وَكَذٰلِكَ إِنْ طَلَّقَ جُزْءًا شَائِعًا مِنْهَا | وهم دغه ډول ( به طلاق واقع کیږی ) که جزء شائع ته ئې طلاق ورکړو |
| مِثْلَ أَنْ يَقُولَ نِصْفُكِ أَوْ ثُلُثُكِ طَالِقٌ | لکه اووائی .چه، نصفك يا ثلثك طالق، |

حل اللغة* ① شائع: خور وور ،ناقابل تقسيم]

تشریح:- مسئله دا ده.که جزء شائع ته طلاق منسوب کړی .نوطلاق به واقع کیږی .مثلاً شخې ته اووائی .
[نفسک طالق] يا [ثلثك طالق] يا [ربعك طالق] يا [سدسك طالق].

Ⓐ ددليل نه وړاندې د جزء شائع معنی زده کړئ.جزء شائع دی ته وائی .چه دا جزء غیرمعین د بدن په هره
برخه باندې صادقیږی .دویمه خبره دا چې جزء شائع د کل په حکم کې وی .

Ⓑ اوس دلیل ته غوږ کیږدئ.

لِأَنَّ الْجُزْءَ الشَّائِعَ مَحَلٌّ لِسَائِرِ التَّصَرُّفَاتِ كَالْبَيْعِ وَغَيْرِهِ خکه چې جزء شائع د ټولو تصرفاتو محل دی.لکه بیع
وغیره، فَكَذَا يَكُونُ مَحَلًّا لِلطَّلَاقِ، إِلَّا أَنَّهُ لَا يَتَجَزَّأُ فِي حَقِّ الطَّلَاقِ نوهم دغه ډول د طلاق محل دی.مگر داچه (جزء
شائع) د طلاق په حق کې نه متجزی کیږی . فَيَثْبُتُ فِي الْكُلِّ ضَرُورَةً نو طلاق به په کُل بدن کې بالضرورة
ثابتیږی .

تشریح:- .دلیل دا دی.چه جزء شائع دټولوتصرفاتو(بیع اوشراء وغیره) محل دی.اوچونکه طلاق هم یوتصرف
دی.ددې به هم محل وی .خوچونکه طلاق ویش اوتجزی نه قبلوی.یعنی داسې نشی کیدې.چه طلاق دې د
بدن په یوه برخه واقع شی .اوپه څه دې واقع نشی .نوځکه د اړتیا په وجه به په واړه بدن کې واقع کیږی .

## جزء معین ته طلاق منسوب کول

| | |
|---|---|
| وَلَوْ قَالَ: يَدُكِ طَالِقٌ أَوْ رِجْلُكِ طَالِقٌ | او كه وې وئیل .،يدك طالق، يا رجلك طالق لَمْ يَقَعِ الطَّلَاقُ نو طلاق به نه |
| | واقع کیږی |

تشریح:- مسئله دا ده.که طلاق یوجزء معین ته منسوب شی .چه په هغې باندې د ښځې د واړه بدن اطلاق نه
کیږی .نوپه دې باندې طلاق واقع کیږی که نه؟ ① نوپه دې اړه کې د احنافو رحمهم الله د درې واړه امامانو په نیزدا
دی.چه طلاق نه واقع کیږی .

وَقَالَ زُفَرُ وَالشَّافِعِيُّ: يَقَعُ او امام زفر او امام شافعی رحمهما الله فرمائی .چه ( په دې سره) طلاق واقع کیږی . وَكَذَا
الْخِلَافُ فِي كُلِّ جُزْءٍ مُعَيَّنٍ لَا يُعَبَّرُ بِهِ عَنْ جَمِيعِ الْبَدَنِ اوهم دا اختلاف په هر هغه معین جزء کې دی.چه په هغې
سره جمیع ( پوره) بدن نه تعبیر کیږی . لَهُمَا أَنَّهُ جُزْءٌ مُسْتَمْتَعٌ بِعَقْدِ النِّكَاحِ ددوی دواړو دلیل دادی.چه دا جزء د عقد
نکاح په وجه قابل انتفاع دی وَمَا هٰذَا حَالُهُ يَكُونُ مَحَلًّا لِحُكْمِ النِّكَاحِ اود کوم چې دا حال وی .هغه به د حکم
نکاح محل وی فَيَكُونُ مَحَلًّا لِلطَّلَاقِ ( اوکوم چې د نکاح محل وی ).نو هغه به د طلاق محل هم وی فَيَثْبُتُ
الْحُكْمُ فِيهِ قَضِيَّةً لِلْإِضَافَةِ نو قضیهٔ د اضافت په وجه به په دې کې حکم ثابتیږی . ثُمَّ يَسْرِي إِلَى الْكُلِّ كَمَا فِي
الْجُزْءِ الشَّائِعِ بیا محل سرایت کوی .کُل ته. لکه څنګه چې په جزء شائع کې کیږی .

تشریح:- امام زفرامام شافعی ،امام مالك اوامام احمد رحمهم الله مذهب دا دی.چه طلاق واقع کیږی په جزء معین
چې د هغې نه په واړه بدن سره تعبیرنشی کولې.لکه پښه،لاس،گوته،ویخته ،غاښ ،نوك.

Ⓐ دامام زفراوامام شافعی رحمهما الله وغیره دلیل قیاس مرکب دی.قیاس مرکب دې ته وائی .چه د دوو قیاسونو نه
جوړ شوې وی .اود دوهم قیاس صغری د اولنی قیاس نتیجه وی .



Ⓑ اوس به حاصل دا وی .چه جزء معین (لاس وغیره)به د عقد نکاح په وجه قابل د نفعې اخستو وی . او هر
هغه جزء چې هغه دعقد نکاح په وجه د قابل د انتفاع وی .هغه به محل د نکاح وی .اوکوم جزء چې د نکاح
محل وی .هغه به د طلاق محل هم وی .نونتیجه دا راووتله.چه جزء معین(لاس وغیره) محل د طلاق
شو.اوچه په یوجزء کې محل واقع شو.نودا به واړه بدن ته متعدی کیږی .(ځکه چې طلاق تجزی اوویش نه
قبلوی )

Ⓒ اودقیاس فقهی صورت دا دی.چه کوم جزء چې په هغې سره دواړه بدن نه تعبیرنشی کولې.هغه د نکاح
دحکم محل وی .نومحل د طلاق به هم وی .لکه جزء شائع.

بِخِلَافِ مَا إِذَا أُضِيفَ إِلَيْهِ النِّكَاحُ په خلاف د هغه صورت کله چې دې ارخ ته د نکاح اضافت اوشی لِأَنَّ التَّعَدِّيَ
مُمْتَنِعٌ ځکه چې تعدی ممتنع ده إِذِ الْحُرْمَةُ فِي سَائِرِ الْأَجْزَاءِ تُغَلِّبُ الْحِلَّ فِي هٰذَا الْجُزْءِ ځکه چې په ټولو اجزاؤ کې به
حرمت په دې جزء کې په حلت باندې غالب راځی . وَفِي الطَّلَاقِ الْأَمْرُ عَلَى الْعَكْسِ. او په طالق کې معامله
برعکس ده

حل اللغة* ① التعدی: تجاوز ② سائر: ټول]

تشریح:- په دې عبارت سره دیوسوال ځواب ورکوی .سوال دا دی.چه ستاسود قول مطابق هرکله چې جزء
معین محل د نکاح دی.نوچه دهغه جزء معین ته د نکاح اضافت اوشی .پکاردا ده.چه نکاح منعقد کولې
شی .حالانکه تاسوپه دې صورت کې دنکاح د انعقاد قائل نه ئې.

Ⓐ دامام زفراوامام شافعی رحمهما الله د اړخه ځواب دا دی.چه کله د نکاح اضافت جزء معین ته اوشی .نوصرف په
دغه معین جزء کې حلت ثابتیږی .اوپه پاته ټولواجزاؤ کې به حرمت وی .اودحلت پاته ټولواجزاؤ ته سرایت
کول ممکن نه دی .ځکه چې د ټولواندامو حرمت د دې یوجزء په حلت باندې غالب وی .اوپه طلاق کې
معامله په عکس ده.یعنی کله چې یوجزء ته د طلاق نسبت اوشی .نودا جزء به حرام وی .اونور به حلال وی
.اوکله چې حرام اوحلال جمع شی .نوترجیح به حرامو ته وی .نوځکه مونږوایو.چه لاس وغیره ته د طلاق په
اضافت کولوسره به په واړه بدن طلاق واقع کیږی .اونکاح نه منعقد کیږی .

وَلَنَا أَنَّهُ أَضَافَ الطَّلَاقَ إِلَى غَيْرِ مَحَلِّهِ او زمونږ دلیل دادی.چه ( دې سړی ) د طلاق اضافت کړې دی.غیرمحل
طلاق ارخ ته، فَيَلْغُو كَمَا إِذَا أَضَافَهُ إِلَى رِيقِهَا أَوْ ظُفْرِهَا نو لغو به وی .لکه چې کله طلاق ددې تهوکانړو یا ددې
نوکانو ارخ ته منسوب کړی وَهٰذَا لِأَنَّ مَحَلَّ الطَّلَاقِ مَا يَكُونُ فِيهِ الْقَيْدُ اودا ځکه چې محل د طلاق هغه وی
.په کوم کې چې قید ( د نکاح) وی . لِأَنَّهُ يُنْبِئُ عَنْ رَفْعِ الْقَيْدِ ځکه چې طالق خبر ورکوی .رفع د قید ته وَلَا قَيْدَ فِي
الْيَدِ او په لاس کې هیڅ قید نشته وَلِهٰذَا لَا تَصِحُّ إِضَافَةُ النِّكَاحِ إِلَيْهِ اوهم په دې وجه ددې ارخ ته نکاح منسوب کول
صحیح نه دی

حل اللغة* ① ریق: لیاړې ② ظفر: نوك ]

تشریح:- زمونږ دلیل دا دی.چه په دې صورتونوکې د طلاق نسبت خپل محل ته نه دې شوې.نوطلاق به لغو وی
.لکه چې یوسړې د خپلې ښځې لیاړو یا نوك ته طلاق منسوب کړی .اولاس وغیره محل د طلاق ځکه نه
دې.چه دطلاق محل به هغه وی .په کوم کې چې د نکاح قید موجود وی .ځکه د طلاق معنی پورته کول د
قید دی .اوپورته کول د قید به په هغه وخت کې متحقق کیږی .چه د وړاندې نه قیدموجود وی .اوپه لاس
وغیره کې قید نشته.نودې ته د طلاق په اضافت کولوسره طلاق هم نه واقع کیږی .هم دا وجه ده.چه جزء
معین لاس وغیره ته دنکاح نسبت اوشی .نونکاح نه منعقد کیږی

بِخِلَافِ الْجُزْءِ الشَّائِعِ . په خلاف د جزء شائع لِأَنَّهُ مَحِلٌّ لِلنِّكَاحِ عِنْدَنَا حَتَّى تَصِحَّ إِضَافَتُهُ إِلَيْهِ خكه چې دا زموږ په نيز محل د نكاح نه دې.تردې چې جزء شائع اړخ ته د نكاح اضافت صحيح دې فَكَذَا يَكُونُ مَحِلًّا لِلطَّلَاقِ نو دغه ډول به محل د طلاق هم وى

تشريح:- .په خلاف دجزء شائع،خكه چې جزء شائع محل د نكاح دې.اوجزء شائع ته د نكاح نسبت كول هم صحيح دې.نوجزء شائع به محل د طلاق هم وى .

داحنافو رحمهم الله د دليل تقريرداسې هم كيداې ى .چه لاس وغيره د انسان اطراف دى .اواطراف تابع وى.او قاعده دا ده.چه د اصل په ذكرسره تابع شامليږى .خود تابع په ذكرسره اصل نه شامليږى .

خوكه څوك اعتراض اوكړى .چه په لاس سره د واړه بدن نه تعبيركولې شى .لكه په كلام پاك كې دى.(( تَبَّتْ يَدَا أَبِي لَهَبٍ وَتَبَّ)) په دې آيت كې دلاس نه مراد ذات دې.نوپكارده چې لاس ته د طلاق په نسبت كولوسره طلاق واقع شى .حالانكه احناف رحمهم الله د طلاق د واقع كيدو قائل نه دى .

خواب دا دې.چه په آيت كې مراد د [يد] نه صاحب د [يد] دې.اوصحيح ده كه د يو قوم په عرف كې دا وى .چه د واړه بدن نه په لاس سره تعبيركوى .نوپه دغه صورت كې يد ته د طلاق په نسبت كولوسره به طلاق واقع كيږى .خكه د طلاق بناء په عرف ده.اوكه د يوځاني په خلگ وكې دا عرف نه وى .نوبيا به يد ته د طلاق په نسبت كولوسره طلاق نه واقع كيږى .

وَاخْتَلَفُوا فِي الظَّهْرِ وَالْبَطْنِ او دوى ( عالمانو) اختلاف كړې دې.په شا او په نس كې وَالْأَظْهَرُ أَنَّهُ لَا يَصِحُّ او ښكاره داده.چه صحيح نه دې لِأَنَّهُ لَا يُعَبَّرُ بِهِمَا عَنْ جَمِيعِ الْبَدَنِ. خكه چې په دې دواړو سره جميع بدن نه تعبير نه كيږى.

حل اللغة: ① الظهر: شا ② البطن: نس ]

تشريح: صاحب دهدايه رحمه الله فرمائى .كه يوكس خپلې منكوحې ته اوونيل.[ظهرك يا بطنك طالق] نو په دې كې د احنافو مشائخو رحمهم الله اختلاف دې.① دبعضو رائې دا ده.چه طلاق واقع كيږى .خكه چې ظهر اوبدن د اصل په معنى كې دى .خكه چې ددې دواړو نه بغيرنكاح ممكن نه ده.اوپه لفظ د ظهر د واړه بدن تعبير هم كولې شى .لكه څنگه چې رسول الله ﷺ فرمائيلى دى .[لاصدقة إلا عن ظهر غنى] عينى شرح هدايه)② او د بعضو رائې دا ده.چه دې دواړو اندامونوكې يوته هم د طلاق په نسبت كولوسره طلاق نه واقع كيږى .هم دا قول اظهردې.خكه چې په دې دواړو سره د واړه بدن سره تعبيرنشى كولې.هم دا وجه ده.كه يوكس خپلې منكوحې ته اوونيل.[ظهرك يا بطنك على كظهرأمى] نودې ظهاركونكې نه دې. والله اعلم بالصواب.

**دريمه يا نيمه برخه طلاق وركول**

وَإِنْ طَلَّقَهَا نِصْفَ تَطْلِيقَةٍ أَوْ ثُلُثَهَا اوكه طلاق نې وركړو( ښځې ته) د يو طلاق نصف، يا دريم ( حصه). كَانَتْ طَالِقًا تَطْلِيقَةً وَاحِدَةً نودا به يو طلاق والا وى

تشريح:- مسئله دا ده.كه يوكس خپلې ښځې ته نيم طلاق يا دريمه برخه طلاق وركړلو.نودا به پوره طلاق شمارلې شى .اوښځه به په يوطلاق طلاقيږى .

لِأَنَّ الطَّلَاقَ لَا يَتَجَزَّأُ خكه چې طلاق نه متجزء كيږى وَذِكْرُ بَعْضِ مَا لَا يَتَجَزَّأُ كَذِكْرِ الْكُلِّ اود بعض مالا يتجزى ذكر د كُل د ذكر پشان دې

تشريح:-دليل دا دې.چه طلاق تجزى نه قبلوى .يعنى نه تقسيميږى .اوقاعده دا ده.چه د بعضې [مالا يتجزئ] ذكر د كل د ذكرپشان دې.نولكه د نيم يا دريمې برخې طلاق ذكرد واړه طلاق ذكردې.نوځكه به په دې ټولو الفاظو پوره يوطلاق واقع كيږى .



پاتې شوه دا خبره چې د بعضې (مالايتجزى] ذكرد واړه د ذكرپشان دې.نوددې وجه دا ده.چه د عاقل بالغ كلام د لغويت نه محفوظ شى .اوپه دې صورت كې به محرم ته مبيح باندې غلبه اوترجيح هم حاصله شى .

وَكَذَا الْجَوَابُ فِي كُلِّ جُزْءٍ سَمَّاهُ لِمَا بَيَّنَّا اوهم دا حكم په هر داسې جزء كې دې.كوم نې چې بيان كړې وى .د هغه دليل په وجه كوم چې موږ بيان كړې دې.

تشريح:-پاتې شوه دا خبره چې د بعضې (مالايتجزى] ذكرد واړه د ذكرپشان دې.نوددې وجه دا ده.چه د عاقل بالغ كلام د لغويت نه محفوظ شى .اوپه دې صورت كې به محرم ته مبيح باندې غلبه اوترجيح هم حاصله شى .

اوهم دا حكم په هغې جزء كې دې.كوم چې نې بيان كړلو.يعنى د طلاق څلورمه برخه يا زرمه حصه. نو هم به يوطلاق واقع كيږى .د وړاندينى دليل د وجې(چه د عاقل بالغ كلام د لغويت نه بچ شى )

**د دوو طلاقونو د دريمې حصې طلاق وركول**

وَلَوْ قَالَ لَهَا اوكه ښځې ته نې اوونيل أَنْتِ طَالِقٌ ثَلَاثَةَ أَنْصَافِ تَطْلِيقَتَيْنِ چې ته د دوې [دوه] طلاقونو درې نصف والا نې فَهِيَ طَالِقٌ ثَلَاثًا نودا ښځه به په درې طلاقو سره مطلقه وى . لِأَنَّ نِصْفَ التَّطْلِيقَتَيْنِ تَطْلِيقَةٌ خكه چې د دوې [دوه] طلاقو نصف يو طلاق وى . فَإِذَا جَمَعَ بَيْنَ ثَلَاثَةِ أَنْصَافٍ نو هركله چې درې نصف جمع شو. تَكُونُ ثَلَاثَ تَطْلِيقَاتٍ ضَرُورَةً نو درې طلاقه شو

تشريح:- مسئله دا ده.كه يوكس خپلې ښځې ته اوونيل.چه [أنت طالق ثلاثة أنصاف تطليقتين] نوپه ښځه باندې درې طلاقه واقع شول.دليل دا دې.چه د دوو طلاقونو يو نيمه برخه يوطلاق شو.او دوهم نيم طلاق دوهم طلاق شو.اودريم نيم طلاق دريم طلاق شو.نودغه ډول درې طلاقه واقع شول.

وَلَوْ قَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ ثَلَاثَةَ أَنْصَافِ تَطْلِيقَةٍ اوكه وې وئيل.چه ته د يو طلاق درې نصف والا نې قِيلَ: يَقَعُ تَطْلِيقَتَانِ نو وئيلى شوى دى .چه دوې [دوه] طلاقه به واقع وى . لِأَنَّهَا طَلْقَةٌ وَنِصْفٌ خكه چې دا يو طلاق او نصف دې فَيَتَكَامَلُ نو ( نصف) به كامل( طلاق) شي وَقِيلَ: يَقَعُ ثَلَاثُ تَطْلِيقَاتٍ او وئيلى شوى دى .چه درې طلاقه به واقع وى لِأَنَّ كُلَّ نِصْفٍ يَتَكَامَلُ فِي نَفْسِهِ خكه چې هر نصف به پخپل ذات كې مكمل وى فَتَصِيرُ ثَلَاثًا نو درې به گرځى

تشريح:-اوكه [أنت طالق ثلاثة أنصاف تطليقة] نې اوونيل.① نوبعضې حضراتو وئيلى دى .چه دوې [دوه] طلاقه به واقع كيږى .دليل دا دې.چه كله د يوطلاق درې نيمې برخې جمع كړې شى .نوهغه به يوطلاق اونيم شى . او چونكه طلاق نه تقسيميږى .نودا نيم به هم پوره طلاق شمارلې شى .نواوس پوره دوې [دوه] طلاقه شول.
② اوبعضو فرمائيلى دى .چه په دې صورت كښې به درې طلاقه واقع كيږى .خكه چې هرنيم په خپل ذات كې مكمل دې.اوچونكه دريم نصف طلاقونه دى .نودرې طلاقه به واقع كيږى .

**دوې [دوه] يا د يونه دوو به مينځ كې طلاق وركول**

وَلَوْ قَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ مِنْ وَاحِدَةٍ إِلَى ثِنْتَيْنِ أَوْ مَا بَيْنَ وَاحِدَةٍ إِلَى ثِنْتَيْنِ اوكه وې وئيل.چه ته د يو نه دوې [دوه] پورې طلاق والا نې.يا په منځ د يو نه دوې [دوه] پورې فَهِيَ وَاحِدَةٌ نو يو به ( واقع) وى وَلَوْ قَالَ: مِنْ وَاحِدَةٍ إِلَى ثَلَاثٍ أَوْ مَا بَيْنَ وَاحِدَةٍ إِلَى ثَلَاثٍ فَهِيَ ثِنْتَانِ او كه وې وئيل.د يو نه دريو پورې،يا په منځ د يو نه دريو

پورې، نودا به دوې [دوه] وی . وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ[١] اودا د ابوحنيفه رحمه الله په نيز دی وَقَالَا فِي الْأُولٰى هِيَ ثِنْتَانِ وَفِي الثَّانِيَةِ ثَلَاثٌ او صاحبين رحمهما الله فرمائی .چه په ړومبی صورت کي دوې [دوه] او په دوهم (صورت) کي به درې (طلاقه) وی

**تشريح:-** په عبارت کي مصنف رحمه الله دوې [دوه] مسئلې ذکرکړی دی .① د ابوحنيفه رحمه الله په نيزبه اول صورت [أنت طالق من واحدة إلى ثنتين يا ما بين واحدة إلى ثنتين] کي به يوطلاق واقع کيږی .اوپه دوهم صورت [من واحدة إلى ثلاث يا ما بين واحـــدة إلى ثـــلاث] کي به دوې [دوه] واقع کيږی .② اودصاحبينوپه نيزبه په اول صورت کي دوې [دوه] اوپه دوهم کي درې طلاقه واقع کيږی .

وَقَالَ زُفَرُ رحمه الله: الْأُولٰى لَا يَقَعُ شَيْءٌ، وَفِي الثَّانِيَةِ تَقَعُ وَاحِدَةٌ او امام زفر رحمه الله فرمائی .چه په ړومبی (صورت) کي به هيڅ نه واقع کيږی .په دوهم (صورت) کي به يو واقع کيږی وَهُوَ الْقِيَاسُ اوهم دا قياس دې لِأَنَّ الْغَايَةَ لَا تَدْخُلُ تَحْتَ الْمَضْرُوْبِ لَهُ الْغَايَةُ ځکه چي غايت د مضروب له الغايت (مغيا) لاندې نه داخليږی .لکه (مثلاً) كَمَا لَوْ قَالَ: بِعْتُ مِنْكَ مِنْ هٰذَا الْحَائِطِ إِلٰى هٰذَا الْحَائِطِ که وې وئيل .چه ما ستا په لاس خرڅ کړو .ددې ديوال نه هغه ديواله پورې

**حل اللغة** ① الحائط: ديوال]

**تشريح:-** امام زفر رحمه الله فرمائی .چه په اول صورت کي يوطلاق هم نه واقع کيږی .اوپه دوهم صورت کي يوواقع کيږی .

منشا داختلاف دا ده .چه دلته د سرې کلام په دوو غايتونو (غايت ابتداء اوغايت انتهاء) باندې مشتمل دې .① نويا خوبه په دواړه غانې په مغياګانوکي داخل وی ② اويا به نه وی .③ اويا به غايت ابتداء داخله وی اوغايت انتهاء به نه وی داخله .④ اويا به غايت انتهاء داخله وی اوغايت ابتداء به نه وی داخله .داولنی صورت قائلين صاحبين رحمهما الله دی .اود دوهم صورت قائل امام زفر رحمه الله دې .اود دريم صورت قائل حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله دې .اود څلورم صورت قائل څوک هم نه دې .

دامام زفر رحمه الله دليل دا دې .چه غايت ديوځيزپه هغې کي نه وی داخله .د کوم لپاره چي غايت بيان شوې وی .غايت به په مغيا کي نه وی داخله .ځکه که غايت په مغيا کي داخله شی .نوغايت، غايت پاتې نشوه .لکه په محسوساتوکي که چا اووئيل .چه [بعت منك هذا الحائط إلى هذا الحائط] په دې صورت کي به دواړه ديوالونه په بيع کښې داخل نه وی .

يوروايت منقول دې .چه دامام زفر رحمه الله په دې قول کي امام ابوحنيفه رحمه الله دامام زفر رحمه الله سره بحث کړې وو .امام صاحب رحمه الله ورته اوفرمائيل .چه ستا عمرڅومره دې؟ هغه ورته اووئيل .چه [ما بين ستين إلى سبعين] نوامام صاحب رحمه الله ورته اوفرمائيل .چه په دې وخت کي ته د نهه کالو ئې .چه دا ئې واوريدل .نوامام زفر رحمه الله حق حيران شو .دامام صاحب رحمه الله منشا دا وه .چه هرکله غايتين خارج کړې شي .نوغايت ابتداء (شپيته) اوغايت انتها (اويا) دی .چه دا دواړه خارج کړې شی .نونهه پاتې شول .امام صاحب رحمه الله په دې واقعه کي امام زفر رحمه الله ته دهغه په غلطئ باندې تنبيه ورکړله .

وَجْهُ قَوْلِهِمَا وَهُوَ الْاِسْتِحْسَانُ أَنَّ مِثْلَ هٰذَا الْكَلَامِ مَتٰى يُذْكَرُ فِي الْعُرْفِ اود صاحبينو رحمهما الله د قول وجه او هم دا استحسان دې .داده .چه ددې کلام مثل کله په عرف کي ذکر کړې شي يُرَادُ بِهِ الْكُلُّ نو ددې نه کل مراد وی .

[١] القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في فتح القدير(٣\٣٦٤) والدرالمختار(٢\٤٧٥) والهندية (١\٣٦٥) نقلاً عن القول [illegible]ح (١\١١٣)-



كَمَا تَقُولُ لِغَيْرِكَ: خُذْ مِنْ مَالِي مِنْ دِرْهَمٍ إِلٰى مِائَةٍ لکه چي اووائی .د خان نه علاوه (بل کس) ته .ته زما د مال نه د يو درهم نه سل درهمو پورې واخله

**تشريح:-** دصاحبينو رحمهما الله دقول وجه دا ده .چه په عام عرف کي د داسې ډول کلام نه کل مراد وی .مثلاً يوکس بل ته اووئيل .[خذ من مالی من درهم إلى مائة] نودې کس ته د پوره سلو اخستلواختيار دې .داسې نه ده چي غايتين نه اوباسی .اود دوې [دوه] کم سلود اخستلواختيار ورته ملاؤ شی .ددې نه معلوميږی .چه دواړه غايتين په مغيا کي داخل وی .

وَلِأَبِي حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ أَنَّ الْمُرَادَ بِهِ الْأَكْثَرُ مِنَ الْأَقَلِّ وَالْأَقَلُّ مِنَ الْأَكْثَرِ اود ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې .چه ددې پشان کلام نه مراد [الأكثر من الأقل] او [الأقل من الأكثر] دې فَإِنَّهُمْ يَقُوْلُوْنَ سِنِّي مِنْ سِتِّيْنَ إِلٰى سَبْعِيْنَ وَمَا بَيْنَ سِتِّيْنَ إِلٰى سَبْعِيْنَ ځکه دوی وائي .چه زما عمر د شپيتو (کالو) نه اويا کالو پورې دې .اود شپيتو او اويا په منځ کي دې وَيُرِيْدُوْنَ بِهِ مَا ذَكَرْنَاهُ او مراد ددې نه هغه دې .کوم چي موږ ذکر کړل

**تشريح:-** دامام ابوحينفه رحمه الله دقول وجه دا ده .چه که غايتين دوې [دوه] عدد ذکرکړې شی .نوددې دوې [دوه] صورتونه دی .ځکه چي ددې دواړو په مينځ کي به يا څه عدد وی اويا به نه وی .① که عدد وی .نوددې څخه به مراد [الأقل من الأكثر] وی .يعنی داقل عدد نه پورته عدد به ترې مراد وی .مثلاً په [من واحـــدة إلى ثلاث] کي د غايتينو په مينځ کي يوعدد دې .اوپه دې مثال کي اقل عدد واحدة دې .اوددې نه اکثريعنی زيات [ثنتين] دی .نودا [ثنتين] [أقل من الأكثر] شو .نوپه دې صورت کي به دوې [دوه] طلاقه واقع شی .② اوکه په مينځ کي عدد نه وی .نومراد به [الأقل من الأكثـــر] وی .اواکثرد [ثنتين] عدد دې .اوددې نه کم يو دې .نو يوعدد به مراد وی .

صاحب دهدايه رحمه الله فرمائی .چه خلګ خپل عمربنائی .نو وائی .چه [سنی من ستين إلى سبعين يا ما بين ستين إلى سبعين] اوددې نه مراد ددې دواړو په مينځ کي چي کوم عدد وی .هغه ترې مراد وی .

وَإِرَادَةُ الْكُلِّ فِيْمَا طَرِيْقُهُ طَرِيْقُ الْإِبَاحَةِ كَمَا ذُكِرَ، إِذِ الْأَصْلُ فِي الطَّلَاقِ هُوَ الْحَظْرُ او په طلاق کي اصل ممانعت دې

**تشريح:-** په دې عبارت سره دصاحبينو رحمهما الله د دليل ځواب ورکوی .حاصل د ځواب دا دې .چه کله غايتين ذکر شي .نود کل اراده د اباحت په موقع کولې شی .لکه په ذکرشوی مثال کي [خذ من مالی من درهم إلى مائة] کي .ځکه چي په دې مثال کي د مخاطب لپاره سل روپۍ مباح کړې شوې .چه څومره غواړی واخلی دې .اوپه طلاق کي اصل ممانعت دې .نود طلاق مسئله په دې باندې قياس کول قياس مع الفارق دې .

ثُمَّ الْغَايَةُ الْأُولٰى لَا بُدَّ أَنْ تَكُوْنَ مَوْجُوْدَةً لِيَتَرَتَّبَ عَلَيْهَا الثَّانِيَةُ بيا غايت اولی ضروری دې .چه هغه موجود وی .چه په دې باندې غايت ثانيه مرتب شی .وَوُجُوْدُهَا بِوُقُوْعِهَا، بِخِلَافِ الْبَيْعِ اود غايت اولی وجود ددې په وقوع سره کيږی .په خلاف د بيع، لِأَنَّ الْغَايَةَ فِيْهِ مَوْجُوْدَةٌ قَبْلَ الْبَيْعِ .ځکه چي غايت په دې کي د وړاندې نه موجود دې وَلَوْ نَوٰى وَاحِدَةً يُدَيَّنُ دِيَانَةً لَا قَضَاءً اوکه يو نيت ئې اوکړو .نو ديانةً به تصديق کولای شی لِأَنَّهُ مُحْتَمَلُ كَلَامِهِ لٰكِنَّهُ خِلَافُ الظَّاهِرِ ځکه چي دا ده د کلام محتمل دې .خودا د ظاهر خلاف دې .

**تشريح:-** په دې عبارت سره دامام زفر رحمه الله د دليل ځواب ورکوی . دځواب حاصل دا دې .چه چونکه لومړنی غايت په دويمه باندې مرتب وی .نود لومړنی غايت وجود ضروری دې .اود لومړنی غايت وجود به د هغې په وقوع سره راځی . نو ځکه موږ وايو .چه لومړنی غايت به داخل وی .اوامام زفر رحمه الله په [بعت منـــك مـــن هـــذا الحائط إلى هذا الحائط] باندې قياس کړې وو .نوموږ دا وايو .چه دا قياس فاسد دې .ځکه چي غايت په مقيس عليه کي ددې نه وړاندې موجود دې .چه لادا غايت جوړه شوې هم نه ده .نود دې د داخلولو څه اړتيا نشته .اوپه مختلف فيه مسئله کي غايت د وړاندې نه موجود نه دې .حالانکه ددې وجود ضروری دې .چه په

دي باندي غايت ثانيه مرتب شي .اوددي وجود به ددي په وقوع سره راځي .نوځكه به لومړنی غايت داخل وی .اوكه په [من واحدة إلى ثلاث] كښي ئې د يوطلاق نيت كړې وی .نوديانةً به ئې تصديق كولې شی .قضاءً به نشی كولې.ځكه چې د يوطلاق محتمل خود ده د كلام محتمل دی.خوخلاف ظاهر دي.اودا خبره وړاندې ذكرشوې ده.چه كوم كلام خلاف ظاهروی .دهغې ديانةً خوتصديق كولې شی .خوقضاءً ئې تصديق نشی كولې.

**د [أنت طالق فى ثنتين] په لفظ سره د طلاق حكم**

وَلَوْقَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً فِي ثِنْتَيْنِ اوكه وې وئيل.[ أنت طالق واحدة فى ثنتين] وَنَوَى الضَّرْبَ وَالْحِسَابَ أَوْلَمْ تَكُنْ لَهُ نِيَّةٌ اود ضرب او حساب نيت ئې اوكړو.يا دده هيڅ نيت نه دي فَهِيَ وَاحِدَةٌ نودا يو ( طلاق) دي

تشريح:- صورت د مسئله دا دي.چه سړی خپلې ښځې ته [أنت طالق واحدة فى ثنتين] اووئيل.اود ضرب او حساب نيت ئې كړې وو.يا ئې نه وو كړې.نوپه دې صورت كې يوطلاق واقع كيږي .

وَقَالَ زُفَرُ رَحِمَهُ اللهُ: تَقَعُ ثِنْتَانِ لِعُرْفِ الْحِسَابِ،(١)او امام زفر رحمه الله فرمائي .چه دوې [دوه] به واقع كيږي .د حساب كونكو د عرف په وجه وَهُوَقَوْلُ الْحَسَنِ بْنِ زِيَادٍ رحمه الله اودا قول د حسن بن زياد رحمه الله دي

تشريح:- اوامام زفر رحمه الله فرمائي .چه دوې [دوه] طلاقه واقع كيږي .اودا د حسن بن زياد رحمه الله قول دي.دامام زفر رحمه الله دليل د حساب لګونوعرف دي.ځكه چې د داسې كلام نه په عامه توګه ضرب مراد اخستې شی .اوچه يوته په دوؤ كې ضرب وركړې شی .نودوې [دوه] ترې جوړيږي .

وَلَنَا أَنَّ عَمَلَ الضَّرْبِ أَثَرُهُ فِي تَكْثِيرِ الْأَجْزَاءِ لَا فِي زِيَادَةِ الْمَضْرُوبِ،او زموږ دليل دادې.چه د ضرب عمل په اجزاؤ په كثرت كې كيږي .د مضروب په زياتوالى كې نه كيږي . وَتَكْثِيرُ أَجْزَاءِ الطَّلْقَةِ لَا يُوجِبُ تَعَدُّدَهَا اود يو طلاق اجزاء د طلاق د تعدد د كثرت( زياتوالى ) موجب نه دي

حل اللغة* ① تكثير:زياتوالي]

تشريح:-زموږ دليل دا دي.چه د څيزونودوې [دوه] قسمونه دی .يوهغه چې دهغې طول عرض اوعمق درې واړه وی .لكه جسمونه او دوهم هغه ډول دي.چه دهغې دا درې واړه شيان (څيزونه ) نه وی .لكه غيرمحسوسات شيان (څيزونه )،نوپه اول ډول كې په ضرب وركولوسره په مضروب كې زيادت راځی .اوپه دوهم ډول كې په ضرب وركولوسره د مضروب په اجزاؤ كې زيادت نه راځی .اوطلاق د دوهم ډول سره تعلق ساتی .نود [أنت طالق واحدة فى ثنتين] مطلب دا شو.چه يوطلاق د دوو برخو والا،اود طلاق د اجزاؤ تكثيرد عدد طلاق موجب نه وی .هم دا وجه ده.كه د يوطلاق څو برخې جوړې كړې شی .نوصرف يوطلاق واقع كيږي .لكه چې څوك اووائی .[أنت طالق طلقة ونصفها وثلثها وربعها وسدسها وثمنها] نوپه دې صورت كې صرف يو طلاق واقع كيږي .

فَإِنْ نَوَى وَاحِدَةً وَثِنْتَيْنِ فَهِيَ ثَلَاثٌ نو كه د يو يا دوې [دوه] نيت ئې اوكړو.نودا به درې ( طلاقه) وی . لِأَنَّهُ يَحْتَمِلُهُ ځكه چې لفظ ددې احتمال لری فَإِنَّ حَرْفَ الْوَاوِ لِلْجَمْعِ وَالظَّرْفَ يَجْمَعُ الْمَظْرُوفَ ځكه چې حرف واؤ د جمع لپاره دې.او ظرف مظروف ته جامع دې وَلَوْ كَانَتْ غَيْرَ مَدْخُولٍ بِهَا اوكه ( دا ښځه) غير مدخول بها وی . تَقَعُ وَاحِدَةٌ كَمَا فِي قَوْلِهِ وَاحِدَةً وَثِنْتَيْنِ نو يو طلاق به واقع كيږي .لكه دده په قول واحدة و ثنتين كې ( چې يو طلاق واقع كيږي )

(١) القول الراجح هو قول الامام زفر رحمه الله كذا فى فتح القدير(٣\٣٦٦) وردالمحتار (٢\٧٢٦) والبحرالرائق (٣\٤٦١) نقلاً عن القول الراجح (١\٣١٢)_



تشريح:- اوكه [واحدة و ثنتين] نيت ئې كړې وی .نودرې طلاقه به واقع كيږي .ځكه چې كلام ددې احتمال لری .ځكه چې ،واو، لكه څنګه چې د جمعيت لپاره راځی .دغه ډول ظرف هم د مظروف لپاره جامع دي.نوپه واؤ او ،فی ، كې يو ډول اتصال دې.ددې امله چې ،فی ،اووائی .نو،واو، مراد اخستلوكې څه قباحت نشته.دا حكم د مدخول بها ښځې دې.اوكه غيرمدخول بها وی .نوصرف يوطلاق واقع كيږي .لكه څنګه چې په صراحت سره د [ واحدة وثنتين] په صورت كې يوطلاق واقع كيږي .

وَإِنْ نَوَى وَاحِدَةً مَعَ ثِنْتَيْنِ اوكه نيت ئې اوكړو.د يو دوې [دوه] سره تَقَعُ الثَّلَاثُ نو درې ( طلاقه) به واقع وی لِأَنَّ كَلِمَةَ "فِي" تَأْتِي بِمَعْنَى مَعَ كَمَا فِي قَوْلِهِ تَعَالَى {فَادْخُلِي فِي عِبَادِي} أَيْ مَعَ عِبَادِي ځكه چې كلمه د فی د مع په معنى كې راځی .لكه د الله تعالى قول ((فَادْخُلِي فِي عِبَادِي)) يعنى [ مع عبادى]

تشريح:-اوكه په [ واحدة فى ثنتين] سره ئې د ،مع ثنتين، نيت كړې وو.نودرې طلاقه به واقع كيږي .ځكه چې لفظ د ،فی ، د،مع، په معنى كې استعماليږي .لكه [ فادخلي فى عبادى] شو.يعنى [مع عبادى].

وَلَوْنَوَى الظَّرْفَ تَقَعُ وَاحِدَةٌ اوكه د ظرف نيت ئې اوكړو.نو يو طلاق به واقع كيږي ،لِأَنَّ الطَّلَاقَ لَا يَصْلُحُ ظَرْفًا فَيَلْغُو ذِكْرُ الثَّانِي ځكه چې طلاق د ظرف جوړيدو صلاحيت نه لری .نود ثانی ذكر به لغو وی

تشريح:- اوكه د [واحدة فى ثنتين]نه ئې د ظرف نيت كړې وی .نوصرف يوطلاق به واقع كيږي .ځكه چې طلاق دبل شی لپاره د ظرفيت صلاحيت نه لری .نولفظ ثانی يعنى [فى ثنتين] لغوشو.اوپه [واحدة] سره يوطلاق واقع شو.

وَلَوْقَالَ اثْنَتَيْنِ فِي اثْنَتَيْنِ وَنَوَى الضَّرْبَ وَالْحِسَابَ فَهِيَ ثِنْتَانِ اوكه وې وئيل.په دوې [دوه] كې .اود ضرب او حساب نيت ئې اوكړو.نودا دوې [دوه] ( طلاقه) دی وَعِنْدَ زُفَرَ ثَلَاثٌ اود امام زفر رحمه الله په نيز درې دی

تشريح:- اوكه وې وئيل.[إثنتين في إثنتين] اودضرب اوحساب نيت ئې كړې وو.نودوې [دوه] طلاقه به واقع كيږي .اودامام زفر رحمه الله په نيزدرې طلاقه واقع كيږي .

لِأَنَّ قَضِيَّتَهُ أَنْ تَكُونَ أَرْبَعًا،لَكِنْ لَا مَزِيدَ لِلطَّلَاقِ عَلَى الثَّلَاثِ ځكه د ضرب تقاضا خودا وه.چه څلور شی .خو طلاق د درېو نه زيات نه دی وَعِنْدَنَا الْاِعْتِبَارُ الْمَذْكُورُ الْأَوَّلُ عَلَى مَا بَيَّنَّاهُ او زموږ په نيز اعتبار د مذكور اول دي.د هغه دليل په وجه كوم چې موږ بيان كړو.

دامام زفر رحمه الله دليل دا دي.چه دضرب تقاضا خودا وه.چه څلور طلاقه واقع شوی وو.خوچونكه د درېو نه زيات طلاق نه وی .نوځكه به درې واقع كيږي .اوزموږ په نيز د ذكرشوی دليل د امله مذكوراول معتبردې.

**د [أنت طالق من ههنا إلى الشام] په لفظ سره د طلاق حكم**

وَلَوْقَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ مِنْ هُنَا إِلَى الشَّامِ اوكه وې وئيل.ته طلاق والا ئې.ددې ځائې نه ( ملك) شام پورې فَهِيَ وَاحِدَةٌ يَمْلِكُ الرَّجْعَةَ نودا يو دې.د رجعت مالك به وی

تشريح:- مسئله دا ده.كه يوكس خپلې ښځې ته اووئيل.چه [أنت طالق من ههنا إلى الشام] نوزموږ په نيز طلاق رجعی واقع كيږي .

وَقَالَ زُفَرُ رَحِمَهُ اللهُ :هِيَ بَائِنَةٌ او امام زفر رحمه الله فرمائي .چه دا بائنه ده لِأَنَّهُ وَصَفَ الطَّلَاقَ بِالطُّولِ ځكه چې طلاق ئې په وصف د طول سره متصف كړې دي قُلْنَا:لَا،بَلْ وَصَفَهُ بِالْقِصَرِ موږ ځواب وركوو. چې نا، بلكه دا ئې متصف كړې قصر ( لنډوالی) سره لِأَنَّهُ مَتَى وَقَعَ وَقَعَ فِي الْأَمَاكِنِ كُلِّهَا ځكه چې كله واقع شی .نو په ټولو ځايونو كې به واقع وی .

تشریح:- اوامام زفر رحمه الله په نیز طلاق بائن واقع کیږي .دامام زفر رحمه الله دلیل دا دی.چه طلاق په وصف طول سره متصف کړې شوې دې.اود طول استعمال د قوت په معنی کې کیږي .اود قوت اظهار په طلاق بائن کې دې په رجعي کې نه وي .ځکه به طلاق بائن واقع کیږي .اوزمونږد اړخه وئیلې شوي دي .چه داسي نه ده.لکه څنګه چې امام زفر رحمه الله فرمائي .بلکه د ملك شام قید چې ئې اولګولو.نودې کس طلاق کوتاه کړلو.ځکه که ده [أنت طالق] وئیلې وو.اود [إلى الشام] ذکر ئې نه ووکړې.نوپه دنیا اوآسمان هرځائې کې به طلاق واقع کیدلو.نوچه د [إلى الشام]ذکرئې اوکړلو.نولکه چې ده په یومحدود مکان پورې د طلاق واقع کیدل خاص کړلو.نودا وئیل.چه طلاق د طول په وصف باندې موصوف کړې شو. صحیح نه دی.

**د [أنت طالق في مكة] په لفظ سره د طلاق حکم**

وَلَوْقَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ بِمَكَّةَ أَوْفِي مَكَّةَ اوکه وې وئیل.ته طلاق والا ئې.مکې سره.یا په مکه کې فَهِيَ طَالِقٌ فِي الْحَالِ فِي كُلِّ الْبِلَادِ نودا به في الحال په ټولو ښارونو کې طلاق والا وي وَكَذٰلِكَ لَوْقَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ فِي الدَّارِ وهم دغه ډول که وې وئیل.[ أنت طالق في الدار]

تشریح:- مسئله یوکس خپلې ښځې ته اووئیل.[أنت طالق بمكة یا في مكة یا أنت طالق في الدار] نو طلاق به في الحال واقع وي .اودا ښځه به د دنیا په ټوول ښارونو او په ټوله مځکه کې مطلقه وي.

لِأَنَّ الطَّلَاقَ لَايَتَخَصَّصُ بِمَكَانٍ دُوْنَ مَكَانٍ ځکه طلاق داسې نه دې.چه یو مکان سره خاص وي .دوهم سره نه وي وَإِنْ عَنٰى بِهِ إِذَا أَتَيْتِ مَكَّةَ اوکه مراد ئې واخستلو ددې نه د [ إذا أتيت مكة] يُصَدَّقُ دِيَانَةً لَاقَضَاءً نو دیانةً به تصدیق کولې شي .قضاءً به تصدیق نشي کولې لِأَنَّهُ نَوَى الْإِضْمَارَ وَهُوَخِلَافُ الظَّاهِرِ ځکه چې دې سړي د مخفي (پټې) خبرې نیت کړې دې.او هغه خلاف ظاهر ده.

تشریح:- ځکه چې طلاق په یوځائې پورې خاص نه وي .بلکه چې کله هم واقع کیږي .نو په هرځائې کې واقع کیږي .اوکه دې سړي د [بمكة أو في مكة ] نه [إذا أتيت مكـة] اراده کړې وه.نویعنی د طلاق واقع کیدو لپاره ئې مکې ته د تلو اراده چې یو پټ شی دې ددې اراده کړې وه.کوم چې د ظاهر نه خلاف دې.نو وړاندې تیرشوې دي .چه د خلاف ظاهر خبرې دیانة تصدیق کولې شي .قضاء نشي کولې.

**د [أنت طالق إذا دخلت مكة] په لفظ سره د طلاق حکم**

وَلَوْقَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ إِذَا دَخَلْتِ مَكَّةَ اوکه وې وئیل.[ أنت طالق إذا دخلت مكة] لَمْ تَطْلُقْ حَتّٰى تَدْخُلَ مَكَّةَ نو طلاق به نه واقع کیږي .تردې چې مکې ته داخله شي لِأَنَّهُ عَلَّقَهُ بِالدُّخُوْلِ ځکه چې طلاق ئې په دخول (د مکې) باندې معلق کړې دې

تشریح:-اوکه وې وئیل.[أنت طالق إذا دخلت مكة] نوطلاق نه واقع کیږي .تردې چې مکة ته داخله شي .ځکه چې طلاق د مکة په داخلیدو پورې معلق شوې دې.اوکه [ في دخولك الدار] ئې وئیلې وي .

وَلَوْقَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ فِي دُخُوْلِكِ الدَّارَ اوکه وې وئیل.[ في دخولك الدار] يَتَعَلَّقُ بِالْفِعْلِ لِلْمُقَارَنَةِ بَيْنَ الشَّرْطِ وَالظَّرْفِ نو فعل سره به متعلق وي .د شرط او ظرف په منځ کې د مقارنت په وجه فَحُمِلَ عَلَيْهِ عِنْدَ تَعَذُّرِ الظَّرْفِيَّةِ نو ظرف به په شرط باندې محمول کولې شي .د ظرفیت د متعذر کیدو په وخت.

تشریح:- نود فعل پورې به متعلق وي .د ظرف او شرط سره د مقارنت په وجه،نو ظرف به په شرط باندې محمول کولې شي .دظرفیت د متعذرکیدو په وخت کې.

**بَابٌ فِي إِضَافَةِ الطَّلَاقِ إِلَى الزَّمَانِ (دا) فصل زماني اړخ ته د طلاق د اضافت (په بیان کې) دې**

**زمانه ته د طلاق نسب کولو په بیان**

وَلَوْقَالَ:



أَنْتِ طَالِقٌ غَدًا اوکه وې وئیل.چه ته صباله طلاق شوې ئې وَقَعَ عَلَيْهَا الطَّلَاقُ بِطُلُوْعِ الْفَجْرِ نو صباله د فجر په راختلو سره به (فوراً) په دې باندې طلاق واقع کیږي لِأَنَّهُ وَصَفَهَا بِالطَّلَاقِ فِي جَمِيْعِ الْغَدِ ځکه چې ده (سړي) هغه په جمیع (پوره) سهار ورځ کې مطلقه کیدلو باندې وصف کړې ده وَذٰلِكَ بِوُقُوْعِهِ فِي أَوَّلِ جُزْءٍ مِنْهُ ددې طلاق واقع کیدل به د سهار د ړومبی جزء کې د کیدو مترادف وي

تشریح:- د دنیا په هره ژبه کې ورځ لپاره یولفظ استعمالیږي .اود دنیا په ژبوکې عربي یوه ژبه ده.چه د نورو ټولوژبو په مقابله کې وسعت لري (ذخیره الفاظ په کې ډیرزیات دی )په عربئ کې د ورځ لپاره د [نهار] لفظ استمالیږي .مثلاً [یوم القیامة) د قیامت ورځ، [یوم العید] د اختر ورځ،د یوم ورځ ایام ده.دا لفظ د قرآن مجید په ډیرو آیاتونوکې راغلې دې.کله چې د ورځ لفظ په ژبه باندې راشي .نوپه ذهن کې د ورځې په اړه کې د اول نه تر آخره پوې د ټولواجزاؤ تصور راپورته شي .دې نه معلومیږي .چه د ورځ نه مراد څه خاص ساعت (المحه) یا وخت (ګنټه ،منټ ،سیکن وغیره مراد نه دی .ورځ (یوم ،نهار اطلا د سهار راختو نه تر لمر پریوتو پورې په ټولو اجزاؤ او لمحاتو باندې مستحق (ثابت) دې.لکه ایام بیض ،ایام تشریق،ایام صیام نه ښکاره دی .په سورة الدر کې د [مطلع الفجر] نه د ورځ اولنې جزء اوساعت مراد ده.اوپه ((ثُمَّ أَتِمُّوا الصِّيَامَ إِلَى الَّيْلِ)) کښې د ورځ آخري جزء اوساعت مراد ده.

دا پیژندل پکار دی .چه لفظ د [أمـــس] د تیرې شوې ورځ اولفظ د [غداً] د راروانې ورځې لپاره استعمالیږي .لفظ د [غد] په قرآن پاك کې ذکردې.مثلاً ((وَلْتَنْظُرْ نَفْسٌ مَّا قَدَّمَتْ لِغَدٍ)) او ((وَمَا تَدْرِيْ نَفْسٌ مَّاذَا تَكْسِبُ غَدًا)) په دواړه آیاتونوکې د راروانې ورځې لپاره د [غد] لفظ استعمال شوې دې.

دهدایه په متن کې چې کومه مسئله بیان شوې ده.په دې کې هم د [أنت طـالق غـدا] ذکردې.یعنی چې یوکس خپلې ښځې ته اووئیل.چه په راتلونکی سهار کې دې ته طلاقه ئې.نو راروان سهار به کله مستحق د ثبوت وي .نودهغه سهار تحقق اوثبوت به د سهار د راختو په اولنی جزء او لومړنی لمحې سره وي .یعنی چې کله راروان سهار راوخیژي .نو سهار (غد) به ثابت شي .نود سهار د راختوسره دستی به د دغه متکلم قول چې [أنت طالق غدا] په ښځه باندې مستحق (ثابت) شي .اوطلاق به واقع شي .ځکه چې د [غدا] لفظ د راروان سهار لپاره موصوف دې.

وَلَوْنَوٰى بِهِ آخِرَ النَّهَارِ اوکه دې سړي په دې (کلام) سره صباله آخري ورځ مراد اخستې وي صُدِّقَ دِيَانَةً لَاقَضَاءً نو دیانت په طور به تصدیق کیږي .قضاء به (تصدیق) نه کیږي لِأَنَّهُ نَوَى التَّخْصِيْصَ فِي الْعُمُوْمِ، وَهُوَيَحْتَمِلُهُ ځکه چې ده په عموم کې د تخصیص نیت کړې دې.په داسې حال کې چې هغه ددې احتمال لري لٰكِنَّهُ مُخَالِفٌ لِلظَّاهِرِ او هغه د ظاهر مخالف شو.

تشریح:- اود متکلم په ښځه به وقوع د طلاق هم (دمتعلق کیدودپاره) هم په دغه وصف پورې متصف وي .که متکلم د خپلې ښځې د طلاق تعلیق د صبانئ ورځې د څه مخصوص وخت سره د خاص کولونیت کړې وي .نوپه دې صورت کې به دیانة به دده تصدیق کولې شي .خوقضاء به د قاضي په نیز دده کلام د ورځې په مخصوص جزء باندې بناء کول معتبر نه وي .ځکه چې دې متکلم د ورځ عمومیت خاص کړلو.اودا صورت ښکاره خبره ده.چه خلاف ظاهردې.ځکه چې په صبانئ ورځ کې د متکلم ښځه په هروخت کې طلاقیدې شوه.نودیانة به د متکلم تصدیق کولې شي .خوقاضي به دده تصدیق نه کوي .ځکه چې انسان په عامه توګه د طلاق په معامله کې بیهوده خبره کوي .اوپه هغې کې د خپلې فاندې خبرې لټوي .نودا د ظاهرخلاف دې.(تشریح از محمدابوبکرقاسمی ولد مولانا محمد عبدالقادر قاسمی)

**په [أنت طالق اليوم غدا] یا [غدا اليوم] طلاق ورکول**

وَلَوْقَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ الْيَوْمَ غَدًا أَوْغَدًا الْيَوْمَ اوکه وې ونيل.[ أنت طالق اليوم غدا] يا وې ونيل.[ غدا اليوم] فَإِنَّهُ يُؤْخَذُ بِأَوَّلِ الْوَقْتَيْنِ الَّذِي تَفَوَّهَ بِهِ نو په دې دوې [دوه] وختونوکې به هغه اخستې شی .چا سره ئې چې وړاندې تکلم کړې دې فَيَقَعُ فِي الْأَوَّلِ فِي الْيَوْمِ چې په ړومبی ( صورت)کې به په يوم ( ورځ) کې واقع کيږی . وَفِي الثَّانِي فِي الْغَدِ او په دوم ( صورت) کې به په غدا ( صبا) کې واقع کيږی

تشريح:- که سړی خپلې ښځې ته اوونيل.چه [أنت طالق اليوم غدا] يا [أنت طالق غدا اليوم] نوپه دواړو لفظونوکې به هغه لفظ اخستلې شی .کوم چې متکلم اول ونيلی وی .نوپه اولنی صورت کې [أنت طالق اليوم غدا] کې به طلاق په يوم (نن ورځ) کې واقع کيږی .اوپه دوهم صورت [أنت طالق اليوم غدا] کې به طلاق په ،غد، راروان سهار کې واقع کيږی .

لِأَنَّهُ لَمَّا قَالَ: الْيَوْمَ ځکه کله ئې چې اوونيل.،اليوم كَانَ تَنْجِيزًا نو طلاق فی الحال واقع شو وَالْمُنَجَّزُ لَا يَحْتَمِلُ الْإِضَافَةَ او منجز د اضافت ( الى الغد) احتمال نه لری وَإِذَا قَالَ: غَدًا كَانَ إِضَافَةً اوکه وې ونيل.،غدا،نو وی به.اضافت وَالْمُضَافُ لَا يَتَنَجَّزُ او مضاف به نه منجز کيږی .لِمَا فِيهِ مِنْ إِبْطَالِ الْإِضَافَةِ ځکه چې په دې کې اضافت باطلول دی .فَلَغَا اللَّفْظُ الثَّانِي فِي الْفَصْلَيْنِ نو په دواړه صورتونوکې ( لفظ) ثانی لغو شو.

تشريح:-دليل دا دې.کله چې ته [اليوم] اوونيل.نودا طلاق منجز (يعنی نافذ) شو في الحال.اومنجز [غد] ته د اضافت احتمال نه لری .نوپه دې صورت کې به لفظ د [غد] عبث وی .اوکه اول ئې [غد] اوونيل .نوطلاق [غد] ته مضاف شو.اوچه غد ته مضاف شی .هغه نه منجز(نافذ) کيږی .ځکه که [مضاف إلى الغد] کې منجز اومنلې شی .نواضافت به باطل شی .اودا صحيح نه ده.نوپه دې صورت کې به لفظ د [يوم] لغو وی .

## په [أنت طالق غدا] کې د ورځې د آخری حصې نيت کول

وَلَوْقَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ فِي غَدٍ اوکه وې ونيل.[ أنت طالق غد] وَقَالَ نَوَيْتُ آخِرَ النَّهَارِ اوده اوونيل.چه ما آخر د ،نهار،( ورځ) نيت کړې دې دِينَ فِي الْقَضَاءِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله (١) نو قضاء به تصديق کولې شی .د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز

تشريح:- که يوکس [أنت طالق فی غد] اوونيل.اونيت ئې د ورځې د آخری برخې کړې وی . ① نودامام ابوحينفه رحمه الله په نيزبه قضاء تصديق کولی شی .

وَقَالَا: لَا يَدِينُ فِي الْقَضَاءِ خَاصَّةً او صاحبين رحمهما الله فرمائی .تصديق به نه کيږی .خاص طور په قضاء کې لِأَنَّهُ وَصَفَهَا بِالطَّلَاقِ فِي جَمِيعِ الْغَدِ ځکه چې ده ښځه طلاق سره متصف کړې ده.په جميع غد کې فَصَارَ بِمَنْزِلَةِ قَوْلِهِ غَدًا عَلَى مَا بَيَّنَّاهُ،نو په منزله دده د قول،غدا،کې شو.د هغه دليل په وجه کوم چې موږ بيان کړو.وَلِهَذَا يَقَعُ فِي أَوَّلِ جُزْءٍ مِنْهُ عِنْدَ عَدَمِ النِّيَّةِ او هم په دې وجه به د غد په اول جزء کې طلاق واقع کيږی .د عدم نيت په وخت.وَهَذَا لِأَنَّ حَذْفَ فِي وَإِثْبَاتَهُ سَوَاءٌ اودا ځکه چې د،فی ، حذف کول او ددې پاته ساتل دواړه برابر دی لِأَنَّهُ ظَرْفٌ فِي الْحَالَيْنِ ځکه چې غد په دواړه صورتونوکې ظرف دې

تشريح:- وصاحبينو رحمهما الله په نيزقضاء تصديق نشی کولې.البته ديانة ئې تصديق کولې شی .دصاحبينو رحمهما الله دليل دا دې.چه دې کس خپلې ښځه په ټوله ورځ کې د طلاق په واقع کيدو موصوف کړله.نولفظ د [في غد] په منزله د [غد] شو.يعنی ده په عموم کې دتخصيص نيت اوکړلو.وتخصيص د عموم نه

(١) القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا فی فتح القدير(٣\٣٧١) والكفاية (٣\٣٧١) والدرالمختار(٢\٤٧٨) والهندية (١\٣٦٦) البحرالرائق (٣\٤٦٧)نقلاً عن القول الراجح (١\٣١٤)-



ښکاره خلاف دې.نوځکه به ئې قضاء تصديق نشی کولی.البته ديانة به ئې تصديق کولې شی .اوچونکه [فی غد] د [غد] په مرتبه کې دې.نوکه د يوجزء نيت په کې اونکړی .نوپه اول جزء به طلاق واقع کيږی .اودا (د نيت د نشتوالی په وجه د ورځ په اوله برخه کې د طلاق واقع کيدل) ددې امله دی .چه د [فی] ذکرکول اوحذف کول دواړه برابردی .ځکه چې په دواړو صورتونوکې کلمه د [فی ] ظرف دې.

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ أَنَّهُ نَوَى حَقِيقَةَ كَلَامِهِ اود ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې.چه ده د خپل کلام د حقيقت نيت کړې دې لِأَنَّ كَلِمَةَ فِي لِلظَّرْفِ وَالظَّرْفِيَّةُ لَا تَقْتَضِي الِاسْتِيعَابَ ځکه چې کلمه د فی ظرف لپاره ده.او ظرفيت د استيعاب تقاضا نه کوی

تشريح:-دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې.چه دې کس چې د ورځې د آخری برخې نيت اوکړلو.نودا ئې د خپل کلام د حقيقت نيت اوکړلو.ځکه چې کلمه د [فی ] دظرف لپاره ده.اوظرفيت د مظروف د استيعاب تقاضا نه کوی .بلکه مظروف هم کله د ظرف د اجزاؤ نه په يوجزء کې موجودېږی .اوکله ظرف دمظروف نه ډک شی .اودمظروف استيعاب هم اوکړی .نودده کلام د دواړو صورتونواحتمال لری .نوهرکله چې متکلم د خپل کلام په محتملاتوکې د يو محتمل نيت اوکړلو.نودا داسې شوه.لکه چې ده د خپل کلام د حقيقی معنی نيت اوکړلو.ددې امله امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائی .چه قضاء به هم دده تصديق کولې شی .

وَتَعَيَّنَ الْجُزْءُ الْأَوَّلُ ضَرُورَةَ عَدَمِ الْمُزَاحِمِ اود جزء اول متعين کيدل د عدم مزاحم په وجه دی فَإِذَا عَيَّنَ آخِرَ النَّهَارِ نوهر کله ئې چې آخر د نهار متعين کړو كَانَ التَّعْيِينُ الْقَصْدِيُّ أَوْلَى بِالِاعْتِبَارِ مِنَ الضَّرُورِيِّ نو تعين قصدی اولی دې.د اعتبار ضروری په مقابله کې

تشريح:- دصاحبينو رحمهما الله دا وينا چې په روځ کې ئې د مخصوص وخت نيت نه وی کړې.نوپه هغه صورت کې د سهار اولنی جزء متعين وی .ددې نه خواب دا دې.چه په دې صورت کې چې د ورځې اولنې جزء متعين کيږی .نوځکه چې مزاحم ورسره نشته.خوچه کله ده د ورځې د آخری جزء متعين کړلو.نود ورځ د آخری جزء تعين په قصد سره راغلو.اوچه نيت ئې نه وی کړې.په هغه صورت کې د اولنی جزء اعتبارد اړتيا د امله وو.اوښکاره خبره ده.چه د اولنی جزء د اړتيا د امله اعتبار کول د قصدی تعين په مقابله کې غوره دې.

بِخِلَافِ قَوْلِهِ غَدًا .په خلاف دده د قول د،غدا، لِأَنَّهُ يَقْتَضِي الِاسْتِيعَابَ ځکه چې لفظ د، غدا، د استيعاب تقاضا کوی حَيْثُ وَصَفَهَا بِهَذِهِ الصِّفَةِ مُضَافًا إِلَى جَمِيعِ الْغَدِ ځکه چې ښځه ئې په دې صفت سره متصف کړې ده.جميع غد اړخ ته منسوب کاوه سره

تشريح:- صاحب دهدايه(رح) په [غدا] سره فرمائی .چه [فی غد] په [غد] باندې قياس کول صحيح نه دی .ځکه چې [غد]د استيعاب تقاضا کوی .يعنی ښځه ئې دطلاق په صفت سره موصوف کړله.چه نسبت ئې اوکړلو جميع غد اړخ ته.

نَظِيرُهُ إِذَا قَالَ: وَاللَّهِ لَأَصُومَنَّ عُمْرِي ددې مثال کله ئې چې اوونيل.غدا،زه به خپل پوره ژوند روژه نيسم وَنَظِيرُ الْأَوَّلِ: وَاللَّهِ لَأَصُومَنَّ فِي عُمْرِي اود اولنی مثال په خدائې( قسم) زه به پخپل ژوند کې روژه نيسم وَعَلَى هَذَيْنِ الدَّهْرَ وَفِي الدَّهْرِ اوهم په دې بنا (بنياد) باندې الدهر او فی الدهر دې.

حل اللغة: ① الدهر:زمانه]

تشريح:- د [غدبلا ذکرفي] نظير [والله لأصومن عمری] اود[في] د ذکر نظير[والله لأصومن في عمری] دې.په اولنی صورت کې به د منهی عنها ورځود روژو سوا نورد واړه عمر روژې نيسی .اوپه دوهم صورت کې په واړه ژوند کې د لږې مودې روژه به ورته هم کافی کيږی .دغه ډول په [الدهر] او[في الدهر] کې توپير دې. يعنی [والله لأصومن الدهر] بغيرد [في] نه او[والله لأصومن في الدهر].په اولنی صورت کې به په خپل يمين کې

هله بري كيږي .چه واړه عمر روژې نيسی .اوپه دوهم صورت كې د لرې مودې په روژې نيولوسره به هم بري كيږي .والله أعلم

## غيرملكي وخت ته دطلاق نسبت كول

وَلَوْقَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ أَمْسِ اوكه وې ونيل.نو پرون ( تيره شوې ورځ) طلاق والا ئې وَقَدْ تَزَوَّجَهَا الْيَوْمَ حالانكه ددې سره ئې نن نكاح شوې ده لَمْ يَقَعْ شَيْءٌ نو هيڅ طلاق به نه واقع كيږی لِأَنَّهُ أَسْنَدَهُ إِلَى حَالَةٍ مَعْهُودَةٍ مُنَافِيَةٍ لِمَالِكِيَّةِ الطَّلَاقِ فَيَلْغُو خكه چې ده طلاق داسې معهوده حالت اړخ ته منسوب كړې دې.كوم چې د طلاق د مالكيت منافي دې.نو لغو به وی كَمَا إِذَا قَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ قَبْلَ أَنْ أَخْلَقَ لكه كله ئې چې اوونيل.ته طلاق والا ئې.مخكي ددې نه چې زه پيدا كړې شم.وَلِأَنَّهُ يُمْكِنُ تَصْحِيحُهُ إِخْبَارًا عَنْ عَدَمِ النِّكَاحِ او خكه ممكن ده.ددې صحيح كرځول، د عدم نكاح خبر ور كاوه سره أَوْعَنْ كَوْنِهَا مُطَلَّقَةً بِتَطْلِيقِ غَيْرِهِ مِنَ الْأَزْوَاجِ يا ددې خبرې.چه دا ښځه د دوهم خاوند په طلاق ور كاوه سره مطلقه ده

**تشريح:-** كه سړي ښځې ته اوونيل.چه [أنت طالق أمس] يعني ته دې پرون طلاقه وې.حالانكه ده ورسره نن نكاح كړې وی .نوپه اتفاق سره طلاق نه واقع كيږی .

دليل دا دې.چه دې كس د خپل طلاق اضافت داسې معلوم حالت ته اوكړلو.كوم چې د طلاق د مالكيت سره منافي دې.يعنی داسې وخت اړخ ته ئې دطلاق نسبت اوكړلو.چه هغه دده په نكاح كې نه وه. نودده كلام به لغو وی .اوطلاق به نه واقع كيږی .لكه چې څنګه يوسړې اووائی .[أنت طالق قبل أن أخلق]

په دې دليل يواشكال كيداې شی .هغه دا چې دلته [أنت طالق لأمس] دې.او[أمسيت] د طلاق د مالكيت سره منافي نه دې.بلكه د مالكيت طلاق نه سره منافي [طلاق قبل التزويج] دې.اود [طلاق قبل ا لتزويج] كيدل په كلام كې ذكرنه دی .

دوهم دليل دا دې.چه دا كلام صحيح جوړول ممكن دی .په دې طريقه چې دې كس چې [أنت طالق لأمس] اوونيل.نوددې خبر ئې وركړلو.چه دا ښځه پرون غيرمنكوحه وه.اودا خبره بيخی صحيح ده.يا دا خبرئې وركړلو.چه دا ښځه پرون د خپل مخكنی خاوند مطلقه وه.نودا هم صحيح ده.په دې دواړو صورتونوكي طلاق هم نه واقع كيږی .اوكلام هم لغو نه دې.

وَلَوْتَزَوَّجَهَا أَوَّلَ مِنْ أَمْسِ اوكه ددې سره ئې نكاح مخكي د پرون ( ورځ) نه، وَقَعَ السَّاعَةَ نو هم په دې وخت به واقع كيږی لِأَنَّهُ مَا أَسْنَدَهُ إِلَى حَالَةٍ مُنَافِيَةٍ خكه چې منافي حالت اړخ ته طلاق نه دې منسوب كړې شوې وَلَا يُمْكِنُ تَصْحِيحُهُ إِخْبَارًا أَيْضًا فَكَانَ إِنْشَاءً اودا خبر جوړول هم صحيح نه دی .نو انشاء به وی وَالْإِنْشَاءُ فِي الْمَاضِي إِنْشَاءٌ فِي الْحَالِ او انشاء فی الماضی انشاء فی الحال وی فَيَقَعُ السَّاعَةَ نو هم په دې وخت به واقع وی

**تشريح:-** اوكه دې كس ښځې سره د تيرشوی سهار نه وړاندې نكاح كړی وی .اوښځې ته ئې [أنت طالق لأمس] اوونيل.نوطلاق هم په هغه وخت كې واقع كيږی .

دليل دا دې.چه دې كس طلاق حالت ته نه دې منسوب كړې.چه هغه حالت د مالكيت طلاق سره منافي وو.خكه پرون دغه ښځه دده منكوحه وه.اودده كلام په خبر وركولوباندې حمل كول هم ممكن نه دی .نودا كلام چې [أنت طالق أمس] انشاء شوه.اود فقهاؤ دا قاعده ده.چه انشاء في الماضی انشاء في الحال وی .يعنی چې په موجوده زمانه كي موجود وی .اويوحكم په مخكنۍ زمانه كي ثابت كړی .نوهغه حكم به په زمانه حال كي ثابتيږی .خكه چې په اثبات فی الماضی باندې هيڅ انسان قادر نه دې.

## دنكاح نه وړاندې وخت ته د طلاق اضافت كول

وَلَوْقَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ قَبْلَ أَنْ أَتَزَوَّجَكِ اوكه وې ونيل.ته دې طلاق يې.مخكي ددې نه،چه زه د تا سره نكاح



اوكړم لَمْ يَقَعْ شَيْءٌ نو هيڅ طلاق به نه واقع كيږی لِأَنَّهُ أَسْنَدَهُ إِلَى حَالَةٍ مُنَافِيَةٍ خكه چې طلاق ئې داسې حالت اړخ ته منسوب كړې دې.كوم چې د طلاق منافي دې فَصَارَ كَمَا إِذَا قَالَ: طَلَّقْتُكِ وَأَنَا صَبِيٌّ أَوْ نَائِمٌ نو داسې شوه.لكه چې كله اووائی .چه ما تاته طلاق دركړو حالانكه زه ماشوم ووم.يا اوده ووم أَوْيَصِحُّ إِخْبَارًا عَلَى مَا ذَكَرْنَا يا صحيح دې.خبر وركول په هغه تفصيل سره كوم چې موږ ذكركړې دې.

**حل اللغة:** ① صبی:ماشوم ② نائم ويده (اوده) ]

**تشريح:-** كه سړی اوونيل.[أنت طالق قبل أن أتزوجك] نو په دې الفاظو سره طلاق نه واقع كيږی .

دليل دا دې.چه د طلاق اضافت داسې وخت ته اوشو.چه هغه وخت د طلاق واقع كيدو سره منافي دی. خكه چې د نكاح نه وړاندې د طلاق وركولووجود نشته.نوپه دې صورت كې طلاق نه واقع كيږی .اوددې حكم به د [طلقتك وأنا صبی يا وأنا نائم] پشان وی .

البته دا چې [أنت طالق] د عدم نكاح خبراوكرځولې شی .(چه ته زما په نكاح كې نه وی ) يا د مخكنی خاوند د طلاق ور كاوه خبر وركول ئې مقصود وی .(چه ته د خپل مخكنی خاوند نه طلاقه شوې ئې)

## په [أنت طالق ما لم أطلقلك] سره طلاق وركول

وَلَوْقَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ مَا لَمْ أُطَلِّقْكِ أَوْمَتَى لَمْ أُطَلِّقْكِ أَوْمَتَى مَا لَمْ أُطَلِّقْكِ اوكه وې ونيل.ته طلاق والا ئې.هغه وخت چې كله زه تاته طلاق درنكړم.يا تركومه پورې چې زه تاته طلاق درنكړم وَسَكَتَ طَلُقَتْ او خاوند خاموش شو.نو( ښځه) طلاق والا شوه

**تشريح:-** صورت د مسئلې دا دې.كه سړی خپلې منكوحې ته اوونيل.چه [أنت طالق مالم أطلقك] يا ئې اوونيل [أنت طالق متى لم أطلقك] يا ئې اوونيل.[أنت طالق متى مالم أطلقك] اوددې الفاظو ونيلونه روسته چوپ شو.نو دستی طلاق واقع كيږی .

لِأَنَّهُ أَضَافَ الطَّلَاقَ إِلَى زَمَانٍ خَالٍ عَنِ التَّطْلِيقِ خكه چې طلاق ئې داسې زمانې اړخ ته منسوب كړې دې.كوم چې د طلاق ور كاوه نه خالي دې وَقَدْ وُجِدَ حَيْثُ سَكَتَ اوهغه ( زمانه) موجود شوه.څنګه چې سړې خاموش شو

**تشريح:-** دليل دا دې.چه په دې درې واړه صورتونوكښې د طلاق نسبت داسې وخت ته شوې دې.چه هغه د طلاق وركولونه خالي وی .اوچه څنګه دې چوپ شو.نوداسې زمانه موجود شوه.(كوم ته چې ئې د طلاق اضافت كړې وو) ددې امله په درې واړه صورتونوكي دچوپ والی نه روسته دستی طلاق واقع كيږی .

وَهَذَا لِأَنَّ كَلِمَةَ مَتَى وَمَتَى مَا صَرِيحٌ فِي الْوَقْتِ اودا خكه چې كلمه د،متی ،او،متی ما، د وخت په معنی كې صريح دی لِأَنَّهُمَا مِنْ ظُرُوفِ الزَّمَانِ خكه چې دا دواړه د ظروف زمان څخې دی .وَكَذَا كَلِمَةُ مَا اوهم دغه ډول كلمه د،ما، وخت لپاره ده قَالَ اللَّهُ تَعَالَى {مَا دُمْتُ حَيًّا} أَيْ وَقْتَ الْحَيَاةِ الله تعالی فرمائيلی دی ،تركومه چې زه ژوندې يم،يعنی د ژوند د وخت پورې.

**تشريح:-** علامه مرغينانی رحمه الله ددې په وضاحت كې فرمائی .چه لفظ د،متی ، او،متی ما،چونكه د ظروف زمان څخې دی .په دې وجه دا دواړه د وخت په معنی كې صريح دی .او دغه ډول لفظ د،ما، هم وخت لپاره راځی .لكه چې د حضرت عيسی ① نه حكايت كاوه كې الله ﷻ فرمائی ((وَأَوْصَانِي بِالصَّلَاةِ وَالزَّكَاةِ مَا دُمْتُ حَيًّا)) يعنی ماته ئې حكم راكړې دې.د لمونځ او د زكاة تركومه پورې چې زه ژوندې يم.

**فوائد:** لفظ د [ما] لكه څنګه چې د وخت لپاره راځی .نودغه ډول د شرط لپاره هم راځی .مثلاً الله تعالی فرمائيلی دی ((مَا يَفْتَحِ اللَّهُ لِلنَّاسِ مِنْ رَحْمَةٍ فَلَا مُمْسِكَ لَهَا وَمَا يُمْسِكْ فَلَا مُرْسِلَ لَهُ مِنْ بَعْدِهِ)) يعنی كه الله تعالی خلګ وته د رحمت دروازه پرانيزی .نوددې څوك بندونكې نشته.اوكه بنده ئې كړی .نوڅوك ئې پرانستونكې نشته.په دې آيت كي لفظ د [ما] دشرط په معنی كي استعمال شوې دې.نولفظ د[ما]كه صرف د وخت په

معنى كي استعمال شوي وى .د شرط په معنى كي نه وى .نوطلاق واقع كيدل پكار دى .اوكه د وخت په
معنى كي نه وى استعمال شوي بلكه د شرط په معنى كي استعمال شوې وى .نود هغې به هغه نه وى كوم
چې وړاندې په تشريح كي تير شو.(يعنى طلاق به نه واقع كيږى )

**كه زه تاته طلاق درنكړم.نوته دې طلاقه ئې .ددې حكم**

وَلَوْقَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ إِنْ لَمْ أُطَلِّقْكِ او كه وې ونيل.ته طلاق والا ئې.كه زه تاته طلاق درنكړم لَمْ تَطْلُقْ حَتَّى يَمُوتَ نو طلاق به نه واقع كيږى .تردې چې مړشى

**تشريح:-** مسئله كه سړى اوونيل.[أنت طالق إن لم أطلقك] نوپه دې صورت كي د مرګ نه وړاندې طلاق واقع
كيږى .يعنى په هغه وخت كي به طلاق واقع كيږى .كله چې خاوند د ژوند نه نااميده شى .اودومره وخت هم
پاته پاتې نشى .چه دې په كي [أنت طالق] اووائى .

لِأَنَّ الْعَدَمَ لَا يَتَحَقَّقُ إِلَّا بِالْيَأْسِ عَنِ الْحَيَاةِ ځكه چې عدم ( د طلاق) نه متحقق كيږى .خود ژوند د مايوسه كيدلو
په وخت.وَهُوَالشَّرْطُ اوهم دا شرط دې.

**حل اللغة:** ① **يتحقق**: ثابتيږى ② **الياس**: نااميدى ③ **الحياة**: ژوند]

**تشريح:-** دليل دا دې.چه په دې كلام كي د طلاق واقع كيدل معلق شوى دى د عدم
تطليق تحقق به په هغه وخت كي راځى .چه دې دژوند نه بيخى مايوسه شى .ځكه چې د نااميدئ د وخت نه
وړاندې هر وخت د طلاق وركولوامكان موجود وى .نوصرف د نااميدئ په وخت كي به د عدم تطليق د شرط
تحقق موجود شى .نوپه دغه وخت كي به طلاق واقع شى .

كَمَا فِي قَوْلِهِ إِنْ لَمْ آتِ الْبَصْرَةَ لكه ځنګه چې دده په قول[ إن لم آت البصرة] كي وَمَوْتُهَا بِمَنْزِلَةِ مَوْتِهِ هُوَالصَّحِيحُ اود
ښځې مرګ د سړى د مرګ په مرتبه كي دې.هم دا صحيح ده.

**تشريح:-** اودا داسې ده.لكه چې يوكس اووائى . [إن لم آت البصرة فانت طالق] نو په دې صورت كي به طلاق په
هغه وخت كي واقع كيږى .چه كله بصرې ته د تلو نه بيخى مايوسه شى .
صاحب دهدايه رحمه الله فرمائى .چه د ښځې مرګ د سړى د مرګ په مرتبه كي دې.يعنى لكه ځنګه چې د سړى
د مرګ نه لږ وړاندې طلاق واقع كيږى .دغه ډول د ښځې د مرګ نه هم لږ وړاندې طلاق واقع كيږى.هم دا
صحيح قول دې.اګرچه په نوادركي ددې خلاف روايت هم موجود دې.

**ته طلاق شوې ئې ترڅه وخته درته ما طلاق نه وى دركړې .ددې الفاظو حكم**

وَلَوْقَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ إِذَا لَمْ أُطَلِّقْكِ، أَوْإِذَامَا لَمْ أُطَلِّقْكِ اوكه وې ونيل.ته طلاق والا ئې.كله چې زه تا ته طلاق درنكړم لَمْ تَطْلُقْ حَتَّى يَمُوتَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله (١) نو طلاق به نه واقع كيږى .تردې چې ( خاوند) مړ شى .د ابوحنيفه رحمه الله په نيز

**تشريح:-** مسئله كه سړى خپلې ښځې ته اوونيل.چه [أنت طالق إذا لم أطلقك] يا [إذا مالم أطلقك] نو په دې
الفاظوسره د طلاق په واقع كيدو كي اختلاف دې.① نودامام ابوحنيفه رحمه الله په نيزد مرګ نه لږ وړاندې د
نااميدئ په وخت كي طلاق واقع كيږى .

---

(١) القول الراجح هو قول أبى حنيفة رحمه الله كذا فى ردالمحتار(٤٨٢\٢) والهندية (٣٧٠\١) والخانية (٢٢١\١) والبحر(٤٧٧\٣) نقلاً عن القول الراجح (٣١٥\١)-



وَقَالَا: تَطْلُقُ حِينَ سَكَتَ او صاحبين رحمهما الله فرمائى .چه مطلقه به وى .كوم وخت چې ( خاوند) چوپوالي اختيار
كړله لِأَنَّ كَلِمَةَ إِذَا لِلْوَقْتِ ځكه چې كلمه د اذا وخت لپاره ده قَالَ اللهُ تَعَالَى {إِذَا الشَّمْسُ كُوِّرَتْ} الله تعالى
فرمائيلى دى .كله چې آفتاب ( نمر) بې نوره شى وَقَالَ قَائِلُهُمْ: وَإِذَا تَكُونُ كَرِيهَةٌ أُدْعَى لَهَا او قائل ونيلى
وې.كله چې كوم ناخوښه شى راپيښ شى .نود هغې لپاره زه راغوښتې شم وَإِذَا يُحَاسُ الْحَيْسُ يُدْعَى جُنْدُبٌ او
كله چې نرمه حلوا تياره شى .نو جندب رابللې شى فَصَارَ بِمَنْزِلَةِ مَتَى وَمَتَى مَا نود، متى ،اود ،متى ما، په
مرتبه كي شو وَهٰذَا لَوْقَالَ لِامْرَأَتِهِ اوهم په دې وجه كه خپلې ښځې ته ئې اوونيل أَنْتِ طَالِقٌ إِذَا شِئْتِ لَا يَخْرُجُ الْأَمْرُ مِنْ
يَدِهَا بِالْقِيَامِ عَنِ الْمَجْلِسِ كَمَا فِي قَوْلِهِ مَتَى شِئْتِ نود ښځې د لاسه به د مجلس نه د پاسيدلو په وجه اختيار نه
اوځى .لكه ځنګه چې دده په قول، متى شئت، كي دى

**حل اللغة:** ① **الشمس**: نمر② **كورت**:ې نوره شو③ **الحيس**: نرمه حلوه ]

**تشريح:-** وصاحبين رحمهما الله فرمائى .چه ځنګه چوپ شى .نوطلاق به واقع شى . د دليل حاصل دا دې.چه لفظ د
[إذا] د وخت په معنى كي مستعمل دې.دالله تعالى ارشاد دې ((إِذَا الشَّمْسُ كُوِّرَتْ)). په دې كي لفظ د [إذا] د
وخت لپاره مستعمل دې.ژباړه دا ده.اوپه كوم وخت كي چې نمرتور شى .
اودغه ډول د يوشاعرقول دې. [إذا تكون] د شعرژباړه دا ده.اوپه كوم وخت كښې چې مصيبت پيښ شى
.نودهغې لپاره زه رابللې شم.اوكله چې حلواه تياره شى .نوجندب رابللى شى .په دې شعركي لفظ د [إذا]
دوې [دوه] ځايه استعمال شوې دې.اوپه دواړوكي د وخت لپاره دې د شرط لپاره نه دې.ځكه كه د شرط
لپاره وې.نو[تكون] او[يحاس] دواړه به د شرط په وجه مجزوم وو.يعنى [الكن] به [يحس] وې.
خوشاعر په دواړو ځائونوكي دا غيرمجزوم ذكركړې دې.ددې نه معلومه شوه.چه [إذا] په دواړه ځايونوكي د
شرط لپاره نه دې.بلكه د وخت لپاره دې.نوهركله چې لفظ د [إذا] د وخت لپاره شو.نودا د [إذا متى] او [متى
ما] په مرتبه كي شو.اوچونكه لفظ د [إذا] د [متى ] په معنى كښې دې.
هم دا وجه ده.كه سړى خپلې ښځې ته اوونيل.[أنت طالق إذا شئت] نوپه دې صورت كي د ښځې اختيارد
مجلس نه په پاسيدوسره نه ختميږى .لكه ځنګه چې په [متى شئت] سره ددې اختيارد مجلس نه په پاسيدو
سره نه ختميږى .نوددې نه هم معلومه شوه.چه لفظ د [إذا] د [متى] په معنى كي دې.نوكوم حكم چې د [متى
] وى .هم هغه حكم به د [إذا] وى .اود [متى ] حكم په مخكنۍ مسئله كي تيرشوې وو.چه په‌چوپ كيدو سره
دستى طلاق واقع كيږى .داسې نه چې د عمر په آخرى برخه وخت كي به واقع كيږى .

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله أَنَّ كَلِمَةَ إِذَا تُسْتَعْمَلُ فِي الشَّرْطِ أَيْضًا اود ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې.چه لفظ د ،اذا، په شرط كي
هم استعمالولې شى ،قَالَ قَائِلُهُمْ: وَاسْتَغْنِ مَا أَغْنَاكَ رَبُّكَ بِالْغِنَى يوكس اوونيل.بې پرواهى كوه.تركومه پورې
چې غنى اوساتى تالره رب ستا په مالدارئ سره وَإِذَا تُصِبْكَ خَصَاصَةٌ فَتَجَمَّلْ .ساو كه تاته فقيرى اورسيږى ،نو
صبرجميل اختيار كړه فَإِنْ أُرِيدَ بِهِ الشَّرْطُ نوكه په دې سره د شرط اراده اوكړې شى لَمْ تَطْلُقْ فِي الْحَالِ نو فى
الحال به طلاق نه ( واقع) كيږى وَإِنْ أُرِيدَ بِهِ الْوَقْتُ تَطْلُقُ اوكه په دې سره د وخت اراده اوكړې شى نو طلاق به
( واقع) كيږى فَلَا تَطْلُقُ بِالشَّكِّ وَالِاحْتِمَالِ نود شك او احتمال په وجه به طلاق نه غورځيږى .

**حل اللغة:** ① **خصاصة**: فقيرى ،محتاجئ ② **تجمل**: صبر كوه]

**تشريح:-** اودامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې.چه لفظ د [إذا] د وخت نه سوا د شرط په معنى كي هم استعماليږى
.صاحب دهدايه رحمه الله په استدلال كي شعرپيش كړې دې.ژباړه ئې دا ده.بې پرواه اوسه ترڅو چې ستا رب ته
غنى پيدا كړې ئې د مالدارئ سره،اوكه په تاباندې تنګى راشى .نوصبرجميل اختيار كړه.په دې شعركي
[إذا] د شرط لپاره دې.ځكه چې [تصبك] مجزوم دې.كه [إذا] شرطيه نه وه.نو[تصبك] كه د [يارب] سره

كيدل پكار وو.

حاصل دكلام دا شوه.چه د [إذا] كلمه د شرط لپاره هم راځي .لكه چې اوس معلومه شوه.اود ظرف اووخت لپاره هم راځي .لكه د صاحبينو رحمهما الله د دليل نه چې معلومه شوه.نوكه په [أنت طالق إذا لم أطلقك] يا [إذا مالم أطلقك] نوكه په دې كې د شرط معنى مراد واخستې شي .نوفى الحال به طلاق نه واقع كيږى. لكه د لفظ [إن] په صورت كې چې څنګه دى .اوكه [إذا] د وخت د معنى لپاره اومنلې شي .پكارده چې طلاق في الحال واقع شي .لكه څنګه چې په لفظ د [متى ] په صورت كې چې في الحال واقع كيږى. لنډيز دا چې په وقوع د طلاق كې شك واقع شو.اود شك په وجه طلاق نه واقع كيږى .نوځكه موږ وايو.چه في الحال طلاق نه واقع كيږى.

| |
|---|
| بخلاف مسئلة المشيئة په خلاف د مسئلې د مشيت لأنه على اعتبار أنه للوقت لا يخرج الأمر من يدها ځكه په دې اعتبار سره،چه ( لفظ د اذا) وخت لپاره دې.د ښځې د لاسه به اختيار نه اوځي وعلى اعتبار أنه للشرط يخرج او په دې اعتبار چې د شرط لپاره دې.( اختيار به د ښځې د لاسه) اوځي والأمر صار في يدها او د طلاق معامله ( يقيناً) د ښځې په لاس كې ده فلا يخرج بالشك والاحتمال نود شك او احتمال په وجه به نه اوځي |

تشريح:-اومسئله د مشيت ددې په عكس ده.ځكه كه په [أنت طالق إذا شئت] كې كه [إذا] د وخت لپاره اومنلې شى .نود ښځې اختيارنه ختميږى .بلكه پاته پاتې كيږى .لكه څنګه چې په [أنت طالق متى شئت] كې د مجلس نه د پاسيدو باوجود د ښځې اختيارپاته پاتې كيږى .اوكه لفظ د [إذا] د شرط لپاره اومنلې شى .نودښځې اختياربه د مجلس نه په پاسيدو سره ختم شي .

حاصل دا چې د يواحتمال په وجه اختياردښځې دلاس نه اوځي .اودبل احتمال په وجه نه اوځي .اواختيار د ښځې په لاس كې په يقين سره موجود دې.نودشك اواحتمال په وجه به نه اوځي .مطلب دا چې اختيار د ښځې دلاس نـه نـه اوځي .نودا ددې املـه نـه دى .چـه [إذا] د [متـى ] پـه معنـى كـې دې.لكـه څنګه چې صاحبين رحمهما الله فرمائى .بلكه حقيقت دا دې.چه د [إذا] په معنى كې چونكه شك پيدا شو.اود شك په وجه يقينى خيزنه زائله كيږى .نوځكه هغه اختيارچه دښځې په لاس كې په يقين سره وو.د شك په وجه نه اوځي .

| |
|---|
| وَهٰذَا الْخِلَافُ فِيمَا إِذَا لَمْ تَكُنْ لَهُ نِيَّةٌ اَلْبَتَّةَ او خلاف په دې صورت كې دې.كله چې د خاوند هيڅ نيت نه وى ،أَمَّا إِذَا نَوَى الْوَقْتَ بهرحال كله نې چې د وخت نيت اوكړو يَقَعُ فِي الْحَالِ نو فى الحال به ( طلاق) واقع كيږى وَلَوْ نَوَى الشَّرْطَ اوكه د شرط نيت نې اوكړو يَقَعُ فِي آخِرِ الْعُمُرِ نو په آخرى عمر كې به واقع كيږى لِأَنَّ اللَّفْظَ يَحْتَمِلُهُمَا ځكه چې لفظ د دواړو احتمال لرى . |

تشريح:صاحب دهدايه رحمه الله فرمائى .چه دامام ابوحنيفه اوصاحبينو رحمهم الله په مينځ كې دا اختلاف په هغه وخت كې دې.چه خاوند په خپل كلام كې د څه نيت نه وى كړې.خوكه هغه د [إذا] په لفظ كې د وخت نيت كړې وى .نوطلاق به في الحال واقع كيږى .اوكه د شرط نيت نې كړې وى .نوطلاق به په آخرى عمر كې واقع كيږى.ځكه چې لفظ د[إذا] د دواړو معانيو احتمال لرى .

په [أنت طالق مالم أطلقك أنت طالق] د الفاظو حكم

| |
|---|
| قَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ مَا لَمْ أُطَلِّقْكِ أَنْتِ طَالِقٌ اوكه وې وئيل.چه ته طلاق والا نې.كوم وخت چې زه تا نه طلاق ورنكړم.ته طلاق والا نې قَالَ ذٰلِكَ مَوْصُولًا بِهٖ، ... فَهِيَ طَالِقٌ بِهٰذِهِ التَّطْلِيقَةِ نودا ښځه به په دې طلاق ور كاوه سره مطلقه كيږى. مَعْنَاهُ ... ددې مسئلې مراد دادې.چه ده ( انت طالق) ددې سره يوځائې اووئيل |

تشريح:- مسئله ... يوسرى خپلې ښځې ته اووئيل.[أنت طالق مالم أطلقك أنت طالق] اودا ورپسې [أنت



طالق] د مخكنى كلام سره يوځائې اووائى .په مينځ كې په كښې جدائى رانه ولى .نوپه دې آخرى [أنت طـالق] سره به يوطلاق واقع كيږى.

| |
|---|
| وَالْقِيَاسُ أَنْ يَقَعَ الْمُضَافُ فَيَقَعَانِ او قياس دادې.چه كوم طلاق زمانې اړخ ته مضاف دې.هغه هم واقع كيږى نو دواړه به واقع كيږى .إِنْ كَانَتْ مَدْخُولًا بِهَا كه ( دا ښځه) مدخول بها وى وَهُوَ قَوْلُ زُفَرَ رَحِمَهُ اللّٰهُ اوهم دا قول د امام زفر رحمه الله دې لِأَنَّهُ وُجِدَ زَمَانٌ لَمْ يُطَلِّقْهَا فِيهِ وَإِنْ قَلَّ وَهُوَ زَمَانُ ځكه داسې زمانه اوموندې شوه.په كوم كې چې ده دې ښځې ته طلاق نه دې وركړې.اګرچه كم ده.او هغه زمانه ده قَوْلِهِ أَنْتِ طَالِقٌ قَبْلَ أَنْ يَفْرُغَ مِنْهَا دده قول، انت طالق، وړاندې ددې نه چې ددې نه فارغ شى |

تشريح:-اودقياس تقاضا دا ده.چه كوم [طالق مالم أطلقك] ته منسوب شوې دې.هغه هم واقع شى .نواوس په دې صورت كې دوې [دوه] صورتونه دى .يوهغه طلاق چې منسوب شوې وى .اويودهغې نه روسته [أنت طالق] دې.خودوې [دوه] طلاقونه به په هغه وخت كې واقع كيږى .چه ښځه مدخول بها وى .دامام زفر رحمه الله هم دا قول دې.

دامام زفر رحمه الله دليل دا دې.چه د طلاق وقوع په داسې وخت پورې معلق كړې شوې دې.چه هغه د تطليق نه خالى وى .اوهغه موجود شوه.اګرچه ډيره كمه ولې نه ده.ددې تفصيل دا دې.چه په [أنـت طـالق] كې اووه حروف دى.-ترڅوچه سړى د قاف پورې تكلم نه وى كړې.طلاق به نه واقع كيږى .نوكه يوكس د [لام] پورې تكلم اوكړلو.اوچپ شو.نوطلاق نه واقع كيږى .اوس په دې مسئله كې چې سړى روستو د [أنت طـالق] تلفظ اوكړلو.په شپږو حروفوباندې تلفظ كـاوه پورې.يعنى په لام باندې دتلفظ كولوته دومره وخت بيامونده شو.چه هغه د تطليق نه خالى وو.نود شرط د موجودوالى د امله د كوم نسبت چې شوې وى .هغه هم واقع شو.اوروستې [أنت طـالق] چونكه غيرمعلق دې.نويوطلاق به په دې واقع شى .نوپه دې مسئله كې امام زفر رحمه الله فرمائى .چه دوې [دوه] طلاقه واقع كيږى.

| |
|---|
| وَجْهُ الْاِسْتِحْسَانِ أَنَّ زَمَانَ الْبِرِّ مُسْتَثْنًى عَنِ الْيَمِينِ بِدَلَالَةِ الْحَالِ او وجه د استحسان داده.چه د قسم پوره كاوه زمانه د دلالت حال په وجه يمين نه مستثنى ده لِأَنَّ الْبِرَّ هُوَ الْمَقْصُودُ ځكه چې قسم پوره كول د يمين مقصود دې وَلَا يُمْكِنُهُ تَحْقِيقُ الْبِرِّ إِلَّا أَنْ يَجْعَلَ هٰذَا الْقَدْرَ مُسْتَثْنًى او دده لپاره د قسم پوره كاوه متحقق كيدل ممكن نه دى .مګر داچه دومره مقدار مستثنى اوګرځولې شى |

تشريح:-وجه داستحسان دا ده.چه د قسم خوړلونه روسته دومره وخت ده ته ضرور ملاويدل پكاردى .چه په هغې كې قسم خوړونكې خپل قسم پوره كړې شى .ځكه چې دقسم نه هم قسم پوره كول مقصود وى .اودا ترهغه وخته پورې ممكن نه وى .ترڅوچه دومره وخت مستثنى نكړې شى .(چه په هغې كې قسم پوره كړې شى )نو[أنت طالق مالم أطلقك] نه روسته دومره وخت وركول پكار دى .چه په هغې كښې د [أنت طالق] په اووه حروفوتلفظ اوكړې شى .د [لام] پورې دشپږو حروفود تلفظ وخت معتبر نه دې.ځكه چې دا وخت د قسم پوره كاوه لپاره كافى نه دې.

| |
|---|
| أَصْلُهُ مَنْ حَلَفَ لَا يَسْكُنُ هٰذِهِ الدَّارَ او ددې اختلاف اصل هغه سړې دې.چاچه قسم اوخوړلو.چه په دې كوركې به نه اوسيږى فَاشْتَغَلَ مِنْ بِالنَّقْلَةِ سَاعَتَئِذٍ بيا هم په دغه وخت سامان منتقل كاوه كې لګيا شو وَأَخَوَاتُهُ عَلَى مَا يَأْتِيكَ فِي الْأَيْمَانِ إِنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالٰى او ددې مثالونه هم په دې تفصيل باندې كوم به چې په كتاب الايمان كې انشاء الله راشى . |

حل اللغة: ① لايسكن نه اوسيږى ② النقلة: كډه اوړل ]

تشريح:-اوددې اختلاف اصل دكتاب الايمان يوه مسئله ده.مسئله دا ده.كه يوسړى دا قسم اوكړلو.چه زه به په دې كوركې نه اوسيږم.بيائې هم په هغه وخت كې د دې كور نه خپل سامان بل ځائې ته اوړل پيل كړل.نو به

دې صورت كې استحساناً نه حانثيږي. ② اودامام زفر رحمه الله په نيزقياساً حانثيږي. ددې مسئلې نور ډيرنظيرونه دي. كوم چې به په كتاب الايمان كې بيانولې شي. انشاءالله

**په ورځ كې د نكاح په كولوبورې د طلاق معلق كول**

وَمَنْ قَالَ لِامْرَأَةٍ اوكوم كس چې يوې ښځې ته اووئيل يَوْمَ أَتَزَوَّجُكِ فَأَنْتِ طَالِقٌ په كومه ورځ چې زه ستا سره نكاح اوكړم. نه طلاق والا ئې فَتَزَوَّجَهَا لَيْلًا طُلِّقَتْ بيا ئې دهغې سره په شپه كې نكاح اوكړله نو طلاق به ( واقع كيږي لِأَنَّ الْيَوْمَ يُذْكَرُ وَيُرَادُ بِهِ بَيَاضُ النَّهَارِ خكه چې ورځ ذكر كولې شي. او ددې نه مراد بياض نهار وي فَيُحْمَلُ عَلَيْهِ وَإِذَا قُرِنَ بِفِعْلٍ يَمْتَدُّ كَالصَّوْمِ وَالْأَمْرِ بِالْيَدِ نو ( يوم به) په بياض نهار باندې محمول كولې شي. كله چې ( لفظ د يوم) فعل ممتد سره مقارن وي. لكه روژه اود ښځې اختيار لِأَنَّهُ يُرَادُ بِهِ الْمِعْيَارُ خكه چې ددې نه مراد معيار دي وَهَذَا أَلْيَقُ بِهِ او( بياض نهار) ددې زيات لائق دي وَيُذْكَرُ وَيُرَادُ بِهِ مُطْلَقُ الْوَقْتِ او( لفظ د يوم) ذكر كولې شي. او مراد ددې نه مطلق وخت وي قَالَ اللهُ تَعَالَى {وَمَنْ يُوَلِّهِمْ يَوْمَئِذٍ دُبُرَهُ} الله تعالى فرمائيلي دي. كوم (مسلمان)كس په دغه ورځ شا كړي كافرانو ته. اوتختي ﴾ وَالْمُرَادُ بِهِ مُطْلَقُ الْوَقْتِ او مراد ددې نه مطلق وخت دي فَيُحْمَلُ عَلَيْهِ إِذَا قُرِنَ بِفِعْلٍ لَا يَمْتَدُّ نو( يوم) به مطلق وخت باندې محمول كولې شي. كله چې ( لفظ د يوم) فعل غير ممتد سره مقارن وي وَالطَّلَاقُ مِنْ هَذَا الْقَبِيلِ او طلاق هم ددې قبيلې څنې دي فَيَنْتَظِمُ اللَّيْلَ وَالنَّهَارَ نو شپې او ورځې ته به ګډ وي

حل اللغة* ① دبر: شا ② ينتظم: شامليږي ③ بياض: سپينوالي ④ يمتد: اوږديږي ]

تشريح:- .اول دا خبره په ذهن كې كينوئ. چه دلته درې الفاظ ذكرشوي دي. ① نهار② ليل ③ يوم. د[نهار] تعلق خاص كرد نمرراختو نه تر نمرپريوتو پورې دي. اود [ليل] تعلق د چاغه يعنى د نمرپريوتو نه تر سهار راختو پورې دي. اوپه لفظ د[يوم] كې د بعضې فقهاؤ رائې دا ده. چه لفظ د يوم د ورځې د رنړائې اومطلق وخت په مينځ كې مشترك دي. اود زياتورائې دا ده. چه لفظ د يوم د ورځې د رنړائې لپاره حقيقت اود مطلق وخت لپاره مجاز دي.

بهرحال په دواړو صورتونوكي لفظ د يوم ظرف دي. اوپه دواړو احتمالاتوكي به يوته ترجيح وركولې شي. د قرينې په وجه. اوقرينه يوه ضابطه ده. چه لفظ د يوم به يا د فعل ممتد سره مقارن وي اويا به نه وي. كه د فعل ممتد سره مقارن وي. نود يوم څخه به مراد د ورځې رنړائي وي. دفعل ممتد نه مراد دا دي. چه دهغه فعل په كولوكي څه وخت لګي. مثلاً روژه نيول دښځې په طلاق كې اختيار، اغوستل، سوريدل چوپ كيدل وغيره.

اوس صورت د مسئلې ته راشه چې يوكس يوې ښځې ته اووئيل. [يوم أتزوجك فانت طـالق] نوده ورسره د شپې نكاح اوكړله. طلاق واقع شو. ددې مسئلې د دليل تعلق د يواصولې بحث سره دي

بهرحال په دې صورت كې به د يوم نه د روځې رنړائي خكه مراد وي. چه د يوم نه مراد معيار دي. او د ورځې رنړائي د معيارجوړيدو لپاره زيات لائق دي. اودمعيار نه مراد دا دي. چه د دغه فعل په كولوكې د اوږد وخت اړتيا نه وي. بلكه مطلق وخت دهغې لپاره كافي وي. اوطلاق هم د فعل غيرممتد د قبيلې څنې دي. نوپه [يوم أتزوجك فانت طالق] كې لفظ د يوم شپې او ورځې دواړو ته ګډ دي. په شپه اورځ كې چې كله هم نكاح اوشي. نوطلاق به واقع كيږي.

وَلَوْ قَالَ: عَنَيْتُ بِهِ بَيَاضَ النَّهَارِ خَاصَّةً او كه وې وئيل. چه ما د يوم نه بياض نهار مراد اخستې وو. خاص طور



باندې دِينَ فِي الْقَضَاءِ نو قضاء به تصديق كولاى شي لِأَنَّهُ نَوَى حَقِيقَةَ كَلَامِهِ خكه چې ده د خپل حقيقت كلام نيت كړې دي وَاللَّيْلُ لَا يَتَنَاوَلُ إِلَّا السَّوَادَ او شپه ګډ نه ده. مګر تورولى ته وَالنَّهَارُ يَتَنَاوَلُ الْبَيَاضَ خَاصَّةً وَهَذَا هُوَ اللُّغَةُ او نهار ګډ نه دې. مګر سپين والى ته. خاصكر، او هم دا لغت دې.

حل اللغة* ① الليل: شپه ② السواد: توروالې ]

تشريح:- البته كه په دې كلام كې سرې خاص كر د ورځې د رنړائې نيت كړې وي. نوقضاءً به ئې هم تصديق كولې شي. خكه چې ده د حقيقت كلام نيت كړې دي. زيات تفصيل د اصول فقه په كتابونوكې دي. هلته دې ددې مطالعه اوكړې شي. والله اعلم بالصواب

**د ښځې د اړخه د طلاق نسبت**

فصل ( دا) فصل دې وَمَنْ قَالَ لِامْرَأَتِهِ: أَنَا مِنْكِ طَالِقٌ يوكس خپلې ښځې ته اووئيل. زه د تا نه طالق يم. فَلَيْسَ بِشَيْءٍ وَإِنْ نَوَى طَلَاقًا نودا هيڅ نه دې. اګرچه د طلاق نيت ئې كړې وي. وَلَوْ قَالَ: أَنَا مِنْكِ بَائِنٌ أَوْ أَنَا عَلَيْكِ حَرَامٌ اوكه وې وئيل. زه د تانه بائن يم. يا په تا باندې حرام يم يَنْوِي الطَّلَاقَ فَهِيَ طَالِقٌ ( او) د طلاق نيت كوي نودا به طلاق والا وي

تشريح:- دا فصل د ښځود اړخه د طلاق منسوب كولوبه بيان كې دي. چونكه د ښځونه د طلاق اضافت كول د سړو د اړخه د طلاق د اضافت نه مخالف دې. خكه ئې دا په جلا فصل كې ذكركړلو.

صورت د مسئلې دا دې. ① چه يوسړى خپلې ښځې ته اووئيل. چه [أنا منك طالق] نو طلاق نه واقع كيږي. او كه دا ئې اووئيل. چه [أنا منك بائن] اويا [أنا عليك حرام] اود طلاق نيت ئې هم وي. نوطلاق به واقع كيږي

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رحمه الله: يَقَعُ الطَّلَاقُ فِي الْوَجْهِ الْأَوَّلِ أَيْضًا إِذَا نَوَى او امام شافعي رحمه الله فرمائي. چه طلاق به واقع كيږي. په رومبى صورت كې هم كله ئې چې نيت كړې وي لِأَنَّ مِلْكَ النِّكَاحِ مُشْتَرَكٌ بَيْنَ الزَّوْجَيْنِ خكه چې ملك مشترك دې. د ښځې خاوند په منځ كې حَتَّى مَلَكَتْ هِيَ الْمُطَالَبَةَ بِالْوَطْءِ كَمَا يَمْلِكُ هُوَ الْمُطَالَبَةَ بِالتَّمْكِينِ تردې چې دا ښځه د وطى د مطالبې مالكه ده. لكه څنګه چې خاوند په قدرت على الوطى باندې د مطالبې مالك دې وَكَذَا الْحِلُّ مُشْتَرَكٌ بَيْنَهُمَا اوهم دغه ډول حلت د دواړو په منځ كې مشترك دې وَالطَّلَاقُ وُضِعَ لِإِزَالَتِهِمَا او طلاق ددې دواړو د زائل كيدو لپاره وضع شوې دي فَيَصِحُّ مُضَافًا إِلَيْهَا نو( طلاق به خاوند) اړخ ته منسوب كاوه سره صحيح وي. كَمَا صَحَّ مُضَافًا كَمَا فِي الْإِبَانَةِ وَالتَّحْرِيمِ لكه څنګه چې ښځه د دوهم خاوند سره د نكاح كاوه نه منع كولې شي. اود وتلو نه ( هم منع كولې شي )

حل اللغة* ① الابانة: جدائى ② التمكين: قدرت وركول ③ التحريم: حرامول]

تشريح:- ② حضرت امام شافعي رحمه الله فرمائي. كه نيت ئې كړې وي. نوپه [أنا منك طـالق] سره هم طلاق واقع كيږي. دليل دا دې. چه ملك نكاح د ښځې او خاوند په مينځ كې شريك دې. هم دا وجه ده چې ښځې ته د خپل خاوند نه د وطى كاوه د مطالبې اختيارشته. لكه څنګه چې سړي ته د ښځې نه د وطى كولود مطالبې اختيارشته. اودغه ډول د دواړو په مينځ كې حلت هم مشترك دې. هم دا وجه ده. چه په دې دواړوكې د هريو لپاره دبل نه فائده اخستل جائزدى. اوپه دې دواړوكې د هريوپه مرګ سره نكاح ختميږي. اوپه دواړوكې هريونكاح كونكې دې. اوطلاق ملك نكاح اوحلت دواړو لره زائله كونكې مقرر شوې دې. نوطلاق چې څنګه ښځې ته منسوب كول جائزدى. دغه ډول سړي ته هم منسوب كول صحيح دى. لكه څنګه چې ابانت اوتحريم په دواړو ښځه اوخاوندكې دهريو داړخه منسوب كول صحيح دى.

وَلَنَا أَنَّ الطَّلَاقَ لِإِزَالَةِ الْقَيْدِ وَهُوَ فِيهَا دُونَ الزَّوْجِ، أَلَا تَرَى أَنَّهَا هِيَ الْمَمْنُوعَةُ عَنِ التَّزَوُّجِ وَالْخُرُوجِ وَلَوْ كَانَ لِإِزَالَةِ الْمِلْكِ او كه

طلاق د ملك زائل کاوه لپاره دي فَهُوَعَلَيْهَا نو ملك په ښځه باندې دي لِأَنَّهَا مَمْلُوكَةٌ وَالزَّوْجُ مَالِكٌ ځکه چي ښځه مملوکه ده.او خاوند مالك دي وَلِهٰذَا سُمِّيَتْ مَنْكُوحَةً او هم په دې وجه منکوحه نوم کیخودې شو

تشریح:-زمونږدليل دا دي.چه طلاق د نکاح قید ختموی .اودنکاح قید دسړی لپاره په ښځه باندې ده چي د ښځي لپاره په سړی باندې وی .تاسوګورئ نه چي پابندی په ښځه ده.چه دا به د بل چاسره نکاح نشي کولې.اودکور نه بهرته نشی وتلې.نوچونکه د نکاح قید صرف په ښځه باندې وی .دا نه زائله کاوه لپاره طلاق به هم صرف د ښځي اړخ ته منسوب کولې شی .سړی ته به نشی منسوب کولې.نو[انا منك طالق] په ذریعه د سړی د اړخه د طلاق منسوب کول صحیح نه دی .اګرچه نیت په کي هم اوشی . که چرته دا اومنلې شی .چه طلاق د ملك زائله کاوه لپاره دي.لکه څنګه چي امام شافعی رحمه الله فرمانی .نوبیا هم دامام شافعی رحمه الله مذهب ثابت نه دي.ځکه چي طلاق صرف د ملك نکاح زائله کاوه لپاره وی .اوملك صرف په ښځه باندې وی .په سړی باندې نه وی .هم دا وجه ده.چه ښځي ته مملوکه او خاوند ته مالك وئيلې شی .اوهم دا وجه ده.چه ښځي ته منکوحه وئيلی شی .اوخاوندته ناکح.نوهرکله چي ملك په ښځه باندې وی نوطلاق به هم د سړی د اړخه په ښځه وی .د ښځي د اړخه به په سړی نه وی .

ﻫ زیات نه زیات د امام شافعی رحمه الله داړخه دا وئيلی شی .چه هرکله ملك صرف په ښځه باندې وی په سړی باندې نه وی .نوبیا ښځي ته د وطی مطالبې کولوحق څنګه دي.موځواب دا ورکوو.چه د ښځي د وطی د مطالبې حق صرف ددې امله دې.چه خاوند مدیون (قرضدارې) دې.خوچه څوك مدیون وی .داضروری نه ده.چه هغه دې مملوك هم وی .

بِخِلَافِ الْإِبَانَةِ.په خلاف د ابانت لِأَنَّهَا لِإِزَالَةِ الْوُصْلَةِ وَهِيَ مُشْتَرَكَةٌ بَيْنَهُمَا ځکه چي ابانت د تعلق زائل کاوه لپاره دي.او تعلق مشترك دي

تشریح:- [بخلاف الأبانة] په دې سره دامام شافعی رحمه الله دقیاس ځواب دي.دځواب حاصل دا دي.چه د ابانت نسبت لکه څنګه چي د ښځي داړخه صحیح دي دغه ډول د سړی د اړخه هم صحیح دي.ځکه چي د ابانت لفظ تعلق اوجوړ ختمولو لپاره راځي .اوتعلق د ښځي او خاوند دواړو د اړخه مشترك وی .نوابانت په ښځه خاوند دواړوکي دهریوداړخه منسوب کول صحیح دی .

وَبِخِلَافِ التَّحْرِيمِ او په خلاف د تحریم . لِأَنَّهُ لِإِزَالَةِ الْحِلِّ وَهُوَمُشْتَرَكٌ بَيْنَهُمَا ځکه چي تحریم د حلت زائل کاوه لپاره دي.او حلت مشترك دي فَصَحَّتْ إِضَافَتُهُمَا إِلَيْهِمَا نو ددې دواړو نسبت به زوجینو اړخ ته صحیح وی

تشریح:- په خلاف د دې چي [أنـا منـك حـرام].ځکه چي تحریم د حلت زائل کاوه لپاره راځی .اوحلت په دواړوکي مشترك دي.نوتحریم هم د دواړو طرفونو نه منسوب کول صحیح دی .

وَلَا تَصِحُّ إِضَافَةُ الطَّلَاقِ إِلَّا إِلَيْهَا اود طلاق نسبت صحیح نه دې.مګر ښځي اړخ ته ( صحیح دې).

تشریح:- پاتی شو طلاق نودا د قید د زوال لپاره استعمالیږی .اوقید صرف په ښځه باندې وی .په سړی نه وی . نوطلاق به صرف د ښځي اړخ ته منسوب کولې شی .سړی اړخ ته به نشی منسوب کولې.

**د دې وینا حکم چي تاته دې یوطلاق وی یا دې نه وی**

وَلَوْ قَالَ : أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً أَوْ لَا فَلَيْسَ بِشَيْءٍ اوکه وې وئیل.[ أنت طالق واحدة اولا] نو هیڅ نه دی قَالَ رضی الله عنه هٰكَذَا ذَكَرَ فِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ مِنْ غَيْرِ خِلَافٍ علامه مرغینانی رحمه الله فرمانی .چه هم دغه ډول په جامع صغیر کي د اختلاف نه بغیر ذکر دی وَهٰذَا قَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله حالانکه دا قول د امام ابوحنیفه رحمه الله دي.



وَأَبِي يُوسُفَ رحمه الله آخِرًا (١) وَعَلَى قَوْلِ مُحَمَّدٍ وَهُوَقَوْلُ أَبِي يُوسُفَ رحمه الله أَوَّلًا تَطْلُقُ وَاحِدَةً رَجْعِيَّةً اود ابویوسف رحمه الله دوهم (قول) اود امام محمد اوهم دا د ابویوسف رحمه الله ړومبې قول دې( دادي).چه یو طلاق رجعی به واقع کیږی ذَكَرَ قَوْلَ مُحَمَّدٍ رحمه الله فِي كِتَابِ الطَّلَاقِ د امام محمد رحمه الله دا قول د .مبسوط. په کتاب الطلاق کي هم په دې صورت کي ذکر دې فِيمَا إِذَا قَالَ لِامْرَأَتِهِ: أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً أَوْلَا شَيْءَ چي کله یوکس خپلې ښځي ته اووئیل.[ أنت طالق واحدة اولا شئ] وَلَا فَرْقَ بَيْنَ الْمَسْأَلَتَيْنِ اود دواړو مسئلو په منځ کي هیڅ توپیر نشته

تشریح:- مسئله دا ده.که یوکس خپلې ښځي ته [أنت طالق واحدة أولا] اووئیل.نوپه دې کلام سره طلاق نه واقع کیږی .علامه مرغینانی رحمه الله فرمانی .چه په جامع صغیرکي دا حکم بغیرد څه اختلاف نه ذکرشوې دي.حالانکه داسې نه ده.بلکه اختلاف په کي شته.① ځکه چي دا دامام ابوحنیفه رحمه الله قول دې② اودامام ابویوسف رحمه الله قول بل دې.دامام ابویوسف رحمه الله اولنې قول او د امام محمد رحمه الله قول دا دې چه په دې کلام سره به صرف یو طلاق رجعی واقع شی .اوپه دې دلیل چي دامام محمد رحمه الله په نیزبه صرف یوطلاق رجعی واقع شی .دا دي.چه د مبسوط په کتاب الطلاق کي د امام محمد رحمه الله قول په دې صورت کي ذکرشوې دې.که یوکس خپلې ښځي ته اووئیل.چه [أنت طالق واحدة أولا شئ] نوپه دې صورت کي امام محمد رحمه الله فرمانی .چه صرف یوطلاق رجعی واقع کیږی.نوهرکله چي په دې مسئله کي دامام محمد رحمه الله په نیزصرف یوطلاق رجعی واقع کیږی .نود [أنت طالق واحدة أولا] په صورت کي به هم صرف یوطلاق رجعی واقع کیږی .ځکه چي په دې دواړو صورتونويعنی [أنت طالق واحدة أولا] او[أنت طالق واحدة أولا شئ] کي څه توپیر نشته

وَلَوْكَانَ الْمَذْكُورُهٰهُنَا قَوْلَ الْكُلِّ او دلته کي مذکور د کُل قول دې فَعَنْ مُحَمَّدٍ رحمه الله رِوَايَتَانِ نود امام محمد رحمه الله نه دوې [دوه] روایتونه دی لَهُ أَنَّهُ أَدْخَلَ الشَّكَّ فِي الْوَاحِدَةِ د امام محمد رحمه الله دلیل دادې.چه شك په واحدة کي داخل کړې دي لِدُخُولِ كَلِمَةِ "أَوْ" بَيْنَهَا وَبَيْنَ النَّفْيِ ځکه چي کلمه د .او، د واحدة اود نفی په منځ کي داخل ده فَيَسْقُطُ اعْتِبَارُ الْوَاحِدَةِ نود واحدة اعتبار به ساقط وی وَيَبْقَى قَوْلُهُ أَنْتِ طَالِقٌ ويبقی قوله انت طالق، به پاته پاتې وی .بِخِلَافِ قَوْلِهِ أَنْتِ طَالِقٌ أَوْلَا او دده قول ،انت طالق، به پاته پاتې وی .په خلاف دده د قول،انت طالق اولا لِأَنَّهُ أَدْخَلَ الشَّكَّ فِي أَصْلِ الْإِيقَاعِ فَلَا يَقَعُ ځکه چي شك په اصل ایقاع کي داخل کړې دي.نو( طلاق) به نه واقع کیږی

تشریح:- .اوکه دا اومنلې شی .چه په جامع صغیر کي څه ذکردی .هغه د ټولو قول دې.نوپه دې صورت کي به موږ وایو.چه دامام محمد رحمه الله نه دوې [دوه] روایتونه منقول دی .یودا چي په ذکر شوې مسئله [أنـت طـالق واحدة أو لا] کي طلاق نه واقع کیږی .اوپه دوهم روایت کي پرې یوطلاق رجعی واقع کیږی .اولنې روایت د جامع صغیر دې.او دوهم روایت د مبسوط د کتاب الطلاق دې.

ﻫدامام محمد رحمه الله دلیل په [أنت طالق واحـدة أولا] کي دا دې.چه په [واحـدة] او[لا] کي شك واقع شوې دې.نود شك د امله د [واحدة] اعتبارخو ساقط شو.او[أنت طالق] په سلامت سره پاتې شو.اوچونکه په [أنت طالق واحدة] سره یوطلاق رجعی واقع کیږی .نوځکه به په دې صورت کي هم یوطلاق رجعی واقع کیږی .په خلاف د [أنت طالق أولا] ځکه چي دلته په اصل طلاق کي واقع شوې دې.اود طلاق په واقع کولوکي که شك واقع شی .نوپه هغه صورت کي طلاق نه واقع کیږی .

وَلَهُمَا أَنَّ الْوَصْفَ مَتَى قُرِنَ بِالْعَدَدِ اود شیخینو رحمهما الله دلیل دادې.چه وصف ( یعني طالق) کله د عدد سره یوځاني ذکرکړې شی كَانَ الْوُقُوعُ بِذِكْرِ الْعَدَدِ نو وقوع د طلاق به په عدد سره وی أَلَا تَرَى أَنَّهُ لَوْقَالَ لِغَيْرِ الْمَدْخُولِ بِهَا:

(١) القول الراجح هو قول الشيخين رحمهما الله كذا فى فتح القدير(٣٨٠\٣) وردالمحتار(٤٧٩\٢) والهندية (٣٦٣\١) والبحر الرائق (٤٨٩\٣) نقلاً عن القول الراجح (٣١٧\١)-

أَنْتِ طَالِقٌ ثَلَاثًا آیا نه ګوري. که غیر مدخول بها ته اووائی ..انت طالق ثلاثاً تَطْلُقُ ثَلَاثًا نو دري طلاقه به واقع کیږي. وَلَوْكَانَ الْوُقُوْعُ بِالْوَصْفِ لَلَغَا ذِكْرُ الثَّلَاثِ اوکه وقوع په وصف سره وي.نود ثلاث ذکر به لغو وو وَهٰذَا لِأَنَّ الْوَاقِعَ فِي الْحَقِيْقَةِ إِنَّمَا هُوَ الْمَنْعُوْتُ الْمَحْذُوْفُ اودا خکه چي واقع په حقیقت کي هغه موصوف محذوف دي مَعْنَاهُ أَنْتِ طَالِقٌ تَطْلِيْقَةً وَاحِدَةً عَلٰى مَا مَرَّ اودا خکه چي واقع په حقیقت کي هغه موصوف محذوف دي.ددي معنی ده.[أنت طالق تطليقة واحدة].لکه څنګه چي په تحقیق سره تیر شو وَإِذَا كَانَ الْوَاقِعُ مَا كَانَ الْعَدَدُ نَعْتًا لَهُ او هرکله چي واقع هغه دي.د کوم عدد چي نعت دي كَانَ الشَّكُّ دَاخِلًا فِي أَصْلِ الْإِيْقَاعِ نو شك په اصل ایقاع کي داخل شو فَلَا يَقَعُ شَيْءٌ نو هیڅ ( طلاق) به نه واقع کیږي .

**حل اللغة:** ① **قرن:** مولبنتی شو ② **المنعوت:** صفت]

**تشریح:-** دشیخینو ﷫ دلیل دادي.چه وصف یعنی طالق چي کله د عدد سره یوځائي ذکرکړی شی .(مثلاً) اووائی .چه [أنت طالق واحدة يا إثنتين يا ثلاثاً] نوواقع کیدل د طلاق به په عدد سره کیږي په صیغه د صفت سره نه.نوکه یوکس خپلي غیرمدخول بها ښځي ته اووئیل.چه [أنت طالق ثلاثــا] نوپه دي به دري طلاقه واقع کیږي .که طلاق په صیغه د صفت سره واقع کیدل.نود [ثلاثاً] ذکربه لغو وو.اووقوع د طلاق په عدد سره خکه کیږي .چه واقع کیدونکې په حقیقت کي هغه موصوف دي.کوم چي محذوف دي.نو [أنت طالق واحــدة] معنی ده.[أنت طالق تطليقة واحــدة] اوهرکله چي واقع کیدونکي هغه موصوف دي.چه عدد ورله وصف دي.نوپه دي صورت کي په اصل ایقاع طلاق کي شك واقع شو.اوپه اصل ایقاع طلاق کي شك واقع کیدو سره طلاق نه واقع کیږي .نوددي امله به دلته طلاق نه واقع کیږي .

### ته دي زما یا ستا په مرګ سره طلاقه ئي

وَلَوْ قَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ مَعَ مَوْتِيْ أَوْ مَعَ مَوْتِكِ فَلَيْسَ بِشَيْءٍ او که وي وئیل.ته طلاق والا ئي.زما د مرګ نه روسته یا ستا د مرګ نه پس،نو هیڅ نشت

**تشریح:-** مسئله که یوکس اووئیل چي [أنت طالق مع موتي] یا [أنت طالق مع موتــك] نوپه اتفاق سره طلاق نه واقع کیږي .د دلیل نه وړاندي دا په ذهن کي واچوئ.چه کلمه د [مع] دمصدر سره ذکر شی .نودا د روسته په معنی کښي وی .لکه [أنت طالق مع نكاحك] یعنی [بعد نكاحك]

لِأَنَّهُ أَضَافَ الطَّلَاقَ إِلٰى حَالَةٍ مُنَافِيَةٍ لَهُ خکه چي طلاق ئي داسي حالت اړخ ته منسوب کړي دي.کوم چي د طلاق منافی دي لِأَنَّ مَوْتَهُ يُنَافِي الْأَهْلِيَّةَ خکه چي د سړي مرګ د اهلیت منافی دي وَمَوْتَهَا يُنَافِي الْمَحَلِّيَّةَ اود ښځي مرګ د محلیت دطلاق منافی دي. وَلَا بُدَّ مِنْهُمَا حالانکه ددي دواړو( موجود کیدلو) اړتیا دي.

**تشریح:-** دلته [موت] مصدر دي.لفظ د [مع] د روسته په معنی کي وی .یعنی [أنت طالق بعد مــوتي] یا [أنــت طالق بعد موتك] نواوس دلیل دا دي.چه طلاق داسي حالت ته منسوب کړي شوي دي.چه هغه حالت د طلاق دحالت نه منافی دي.خکه چي د سړي مرګ د اهلیت طلاق سره منافی دي.اود ښځي طلاق لپاره د محل جوړولو سره منافی دي.حالانکه د وقوع طلاق لپاره اهلیت اومحلیت دواړه ضروری دی .

### د سړي د خپلي ښځي دڅه د حصي مالك جوړیدل اوددي په عکس کي تفریق

وَإِذَا مَلَكَ الرَّجُلُ امْرَأَتَهُ اوکله چي خاوند د خپلي ښځي مالك شو أَوْ شِقْصًا مِنْهَا یا ددي د یوي حصي، أَوْ مَلَكَتِ الْمَرْأَةُ زَوْجَهَا أَوْ شِقْصًا مِنْهُ یا ښځه د خپل خاوند مالکه شوه.یا دده د یوي برخي ( مالکه شوه). وَقَعَتِ الْفُرْقَةُ نو فرقت واقع کیږي

**حل اللغة:** ① **شقص:** برخه ② **الفرقة:** جدائی ]



**تشریح:-** مسئله، که سړي دخپلي ښځي د اخستلو یا وراثت یا هبې یا صدقې په ذریعه مالك شو.یا ددي د څه برخي مالك جوړ شو.یا په ذکر شوو وجوهوکي په څه وجه ښځه د خاوند مالکه جوړه شی .نوپه دواړو صورتونوکي به د دواړو په مینځ کي بیلتون واقع کیږي .یعنی نکاح به پورته کیږي .

لِلْمُنَافَاةِ بَيْنَ الْمِلْكَيْنِ.د دواړو ملکونو په منځ کي د منافات په وجه أَمَّا مِلْكُهَا إِيَّاهُ بهرحال د ښځي ملك ( خپل) خاوند باندي فَلِلِاجْتِمَاعِ بَيْنَ الْمَالِكِيَّةِ وَالْمَمْلُوْكِيَّةِ نود مالکیت او مملوکیت په منځ کي د اجتماع په وجه

**تشریح:-** خکه چي په ملك نکاح اوملك یمین کي منافات دی.ددي تفصیل دا دي.که ښځه د خاوند مالکه شی .نود مالکیت اومملوکیت اجتماع راغله.خکه چي ملك نکاح تقاضا کوی .چه ښځه دي مملوکه وی .اوملك یمین تقاضا کوی .چه ښځه دي مالکه وی .اود ملکین اجتماع ناممکن ده.نوځکه به بیلتون واقع کیږي .

وَأَمَّا مِلْكُهُ إِيَّاهَا اود خاوند ملك ( (خپلي) ښځي باندي فَلِأَنَّ مِلْكَ النِّكَاحِ ضَرُوْرِيٌّ خکه دي.چه ملك د نکاح ضرورةً ( ثابت) دي وَلَا ضَرُوْرَةَ مَعَ قِيَامِ مِلْكِ الْيَمِيْنِ اود ملك یمین په موجودکیدلو کي هیڅ اړتیا نشته فَيَنْتَفِي النِّكَاحُ نو ( ملك د نکاح) منتفی کیږي

**تشریح:-** اوکه خاوند د خپلي ښځي مالك جوړ شو.نووجه د فرقت دا ده.چه ملك نکاح د اړتیا په وجه ثابتیږي .خکه چي هرملك نکاح اثبات دي په آزاده ښځه باندي.اوپه آزاده ښځه باندي اثبات د ملکیت خلاف قیاس دي.اوچه کوم شی خلاف قیاس ثابت شی .نوهغه د اړتیا په وجه ثابتیږي .نوثابته شوه.چه ملك نکاح د اړتیا په وجه ثابتیږي .اوچه ملك یمین وی .نوڅه اړتیا پاتي نشو.نوچه ملك یمین ثابت شو.نوملك نکاح زائل شو.

وَلَوِ اشْتَرَاهَا اوکه ( خاوند) ( خپله ښځه وینځه) واخستله ثُمَّ طَلَّقَهَا لَمْ يَقَعْ شَيْءٌ بیا ئي دي ته طلاق ورکړو.نو هیڅ به نه واقع کیږي لِأَنَّ الطَّلَاقَ يَسْتَدْعِي قِيَامَ النِّكَاحِ خکه چي طلاق د قیام نکاح تقاضا کوی وَلَا بَقَاءَ لَهُ مَعَ الْمُنَافِي لَا مِنْ وَجْهٍ وَلَا مِنْ كُلِّ وَجْهٍ اود منافی په موجودګۍ کي د نکاح لپاره هیڅ بقاء نشته.نه من وجه اونه من کل وجه

**تشریح:-** اوکه خاوند خپله منکوحه واخستله.اوبیا ئي ورته طلاق ورکړلو.نوطلاق نه واقع کیږي .خکه چي طلاق تقاضا کوی د نکاح د پاته کیدو.اود منافی (ملك یمین) د وجود په صورت کي د نکاح لپاره څه بقا نه وی . نه من وجه اومن کل وجه.من وجه خوځکه چي په دي اخستي شوي وینزه باندي عدت واجب نه دي.که عدت واجب وو.نونکاح به من وجه پاته وه.اومن کل وجه ځکه نه ده باقی .چه ملك نکاح زائله شو.

وَكَذَا إِذَا مَلَكَتْهُ أَوْ شِقْصًا مِنْهُ اوهم دغه ډول کله چي ښځه ( دخپل خاوند) مالکه شوه.یا دده د یوي برخي لَا يَقَعُ الطَّلَاقُ لِمَا قُلْنَا مِنَ الْمُنَافَاةِ[1] نو طلاق به نه واقع کیږي .د هغه دلیل په وجه کوم چي موږ بیان کړو.یعنی منافات.

**تشریح:-** اوپه داسي صورت کي به هم طلاق نه واقع کیږي .چه آزاده ښځه دخپل خاوند مالکه شی .په داسي حال کي چي هغه غلام وی .یا دهغه د څه برخي مالکه شی .د وړاندیني دلیل د وجي.یعنی د مالکیت او مملوکیت په منځ کي منافات دي.

وَعَنْ مُحَمَّدٍ ﷫ أَنَّهُ يَقَعُ اود امام محمد ﷫ نه نقل دی .چه واقع کیږي لِأَنَّ الْعِدَّةَ وَاجِبَةٌ.خکه چي عدت واجب دي

**تشریح:-** اودامام محمد ﷫ نه روایت دي.چه په دوهم صورت کي (چه ښځه دخپل خاونده مالکه شی )که خاوند طلاق ورکړلو.نوطلاق واقع کیږي .دلیل دا دي.چه په دي صورت کي په ښځه باندي عدت واجب

[1]) القول الراجح هو قول الشيخين ﷮ كذا فى الخانية (۲۶۷\۲) وفتح القدير(۳۸۲\۳) والكفاية (۳۸۲\۳) والبحرالرائق (۴۹۱\۳) نقلاً عن القول الراجح (۳۱۸\۱)_

دي اوچونکه په عدت کې من وجه نکاح پاته وي .نوځکه به طلاق واقع کیږي .

**بِخِلَافِ الْفَصْلِ الْأَوَّلِ** په خلاف د ړومبي صورت **لِأَنَّهُ لَا عِدَّةَ هُنَاكَ حَتَّى حَلَّ وَطْؤُهَا لَهُ** ځکه چې دلته کې عدت نشته.تردې چې ددې سره خاوند لپاره وطی کول حلال دی .

**تشریح:** په خلاف د لومړني مسئلې یعنی کله چې سړی خپله منکوحه وینزه واخستله.اوبیا ئې ورته طلاق ورکړلو .نوطلاق نه واقع کیږي .ځکه چې په دې صورت کې په هغې باندې عدت واجب نه دی.هم داوجه ده.چه د هغې دمالك لپاره دا وطی کول حلال دی .نوهرکله چې عدت واجب نشو.نونکاح من وجه هم پاته نشوه. والله اعلم

## د غیر مملوکې وینزې ته دخپل خاوند نه د آزادیدو په تعلیق سره طلاق ورکول

**وَلَوْقَالَ لَهَا** اوکه ( خپلې) ښځې ته ئې اووئیل **وَهِيَ أَمَةٌ لِغَيْرِهِ** په داسې حال کې چې هغه د بل کس وینځه ده **أَنْتِ طَالِقٌ ثِنْتَيْنِ مَعَ عِتْقِ مَوْلَاكِ إِيَّاكِ** ته دوې [دوه] طلاق والا ئې.ستا د مولا تالره د آزادولو نه روسته **فَأَعْتَقَهَا مَوْلَاهَا** بیا ئې دا آزاده کړله **مَلَكَ الزَّوْجُ الرَّجْعَةَ** نو خاوند به رجعت مالك وي

**تشریح:**- صورت د مسئلې دا دې.چه یوکس خپلې ښځې ته اووئیل.چه هغه د بل چې وینزه وي .[أنت طالق ثنتين مع عتق مولاك إياك] اوبیا مالك آزاده کړه.نوبه آزادیدو سره په هغې باندې دوې [دوه] رجعی طلاقه واقع شول.حرمت غلیظه نه ثابتیږي .

ﷲدلته خوخبرې قابل ذکردی . یودا چې تعلیق وائي . یوڅیز په بل شي پورې معلق کول (ترل)کوم چې معلق کړې شوې وي .هغې ته مشروط وائي .اوچه په کوم پورې معلق کړې شوې وي .هغې ته شرط وائي .اوشرط هغې ته وائي .چه بالفعل معدوم وي .خود وجود امکان ئې وي .اوحکم هغې پورې متعلق کیدای شی .اودلته په [مع عتق مولاك إياك] کې دا معنی موجودیږي .ځکه چې اعتاق د مولی بالفعل معدوم دې.البته د وجود امکان ئې شته.اوحکم یعنی وقوع د طلاق د هغې سره متعلق کیدای هم شي .نودلته به عتق شرط وي .او وقوع د طلاق به مشروط وي .

**لِأَنَّهُ عَلَّقَ التَّطْلِيقَ بِالْإِعْتَاقِ أَوِ الْعِتْقِ** ځکه چې تطلیق ( طلاق ورکول) د آزادولو یا آزادیدلو باندې معلق کړې دې **لِأَنَّ اللَّفْظَ يَنْتَظِمُهُمَا** ځکه چې لفظ دواړو ته ګډ دې **وَالشَّرْطُ مَا يَكُونُ مَعْدُومًا عَلَى خَطَرِ الْوُجُودِ** او شرط هغه وي .کوم چې بالفعل معدوم وي .په وجود د امکان سره **وَلِلْحُكْمِ تَعَلُّقٌ بِهِ** او حکم ددې سره متعلق وي **وَالْمَذْكُورُ بِهَذِهِ الصِّفَةِ** او کوم چې ذکر دی .هغه هم هغه صفت سره دی **وَالْمُعَلَّقُ بِهِ التَّطْلِيقُ** او کوم چې معلق کړې شوې دې.هغه تطلیق دې

**حل اللغة:** ① **التطليق** طلاقول ② **الاعتاق** آزادول ③ **خطر** امکان ،نزدیکت ]

**تشریح:**- وجه دا ده چې په عتق پورې تطلیق معلق شوې دې.په طلاق پورې نه دې.ځکه چې انسان تصرف په داسې څیزکې نافذ کولې شي .چه دهغې څیزدې مالك وي .اوچه د کوم څیزمالك نه وي .نوپه هغې کې ددهٔ تصرف نه نافذ کیږي .اوانسان د تطلیق (طلاق ورکولو) مالك دې.دطلاق مالك نه دې.ځکه چې وقوع د طلاق امرشرعی دې.اودا دده په قدرت کې نه دې.نود خاوند د اړخه به تطلیق معلق وي چې دې ئې مالك دې.طلاق به نه وي معلق.هم دا صورت صاحب دهدایه ﷺ بیان کړې دې.چه په عتق پورې څه معلق شوې وي .هغه تطلیق دې.طلاق نه دې.

**لِأَنَّ فِي التَّعْلِيقَاتِ يَصِيرُ التَّصَرُّفُ تَطْلِيقًا عِنْدَ الشَّرْطِ عِنْدَنَا** ځکه چې په تعلیقات کې ( قولي ) تصرف د شرط په وخت تطلیق کیږي .زموږ په نیز **وَإِذَا كَانَ التَّطْلِيقُ مُعَلَّقًا بِالْإِعْتَاقِ أَوِ الْعِتْقِ** او هرکله چې تطلیق معلق دې.په اعتاق یا عتق باندې **يُوجَدُ بَعْدَهُ** نو تطلیق به د عتق نه روسته موندلې شي **ثُمَّ الطَّلَاقُ يُوجَدُ بَعْدَ التَّطْلِيقِ** بیا به د تطلیق



نه روسته طلاق موندلې کیږي **فَيَكُونُ الطَّلَاقُ مُتَأَخِّرًا عَنِ الْعِتْقِ** نو طلاق به د عتق نه موخر وي **فَيُصَادِفُهَا وَهِيَ حُرَّةٌ** نو طلاق به ښځه په داسې حالت کې بیا مومي .چه دا حره ( آزاده کړې شوې) ده **فَلَا تَحْرُمُ حُرْمَةً غَلِيظَةً بِالثِّنْتَيْنِ** نودا به په دوې [دوه] طلاقو سره په حرمت غلیظه سره حرامه نه وي

**تشریح:**- ځکه چې په تعلیقاتو کې قولي تصرف په هغه وخت کې زموږ په نیزتطلیق ګرځي .چه شرط ئې موجود شي .ددې تفصیل دا دې.چه کله یوکس په شرط پورې معلق کړلو.نودا طلاق به د شرط د وجود په وخت کې تطلیق شي .ځکه چې زموږ په نیزشرط مانع دعلت اومانع د حکم دواړو دې.اوداامام شافعی ﷺ په نیزشرط صرف مانع د حکم دې.یعنی د شرط د موجودوالی په وخت.لکه چې خاوند طلاق ورکړلو.اوددې تکلم ئې اوکړلو.بیا طلاق واقع شو.اوامام شافعی ﷺ فرمائي .چه طلاق ورکول خود تکلم په وخت کې موجود شوی دی .اوس د شرط د وجود په وخت کې صرف حکم یعنی وقوع د طلاق موجود شوه.اودا مسئله سره د ماله اوما علیه نه د اصول فقه په کتابونوکې ذکرده.هلته دې اوکتلې شي .

ﷲدریم څیزیعنی تطلیق په اعتاق یا عتق پورې معلق کول.ددې لپاره دې.چه لفظ د [مع عتق مولاك] دواړو ته ګډ شي .

ددې تفصیل دا دې.چه کله یوکس په شرط پورې معلق کړلو.نودا طلاق به د شرط د وجود په وخت کې تطلیق شي .ځکه چې زموږ په نیزشرط مانع دعلت اومانع د حکم دواړو دې.اوداامام شافعی ﷺ په نیزشرط صرف مانع د حکم دې.یعنی د شرط د موجودوالی په وخت.لکه چې خاوند طلاق ورکړلو.اوددې تکلم ئې اوکړلو.بیا طلاق واقع شو.اوامام شافعی ﷺ فرمائي .چه طلاق ورکول خود تکلم په وخت کې موجود شوی دی .اوس د شرط د وجود په وخت کې صرف حکم یعنی وقوع د طلاق موجود شوه.اودا مسئله سره د ماله اوما علیه نه د اصول فقه په کتابونوکې ذکرده.هلته دې اوکتلې شي .

ﷲدریم څیزیعنی تطلیق په اعتاق یا عتق پورې معلق کول.ددې لپاره دې.چه لفظ د [مع عتق مولاك] دواړو ته ګډ شي .

ﷲددې تفصیل نه روسته د دلیل لنډیز دا شوه.چه خاوند تطلیق معلق کړلو په عتق پورې.نوعتق شرط اوتطلیق جزاء شوه.اوچونکه جزاء د شرط پسې روستو راځي .نوځکه به عتق وړاندې وي اوتطلیق به ددې نه روسته وي .او طلاق دتطلیق نه روسته وي .ځکه چې طلاق حکم دې.د تطلیق.اود څیزحکم د هغې شي نه روسته وي .نو نتیجه دا شوه.چه طلاق به د آزادئ نه روسته واقع کیږي .اوچونکه آزاده ښځه په دوو طلاقو سره په طلاق غلیظه سره نه طلاقیږي .نوځکه دلته خاوند ته د دوو طلاقونه روسته د رجوع کولوحق حاصل دې.

**يَقَعُ شَيْءٌ** څه پاته پاتې شو **وَهُوَ أَنَّ كَلِمَةَ مَعَ لِلْقِرَانِ** هغه داچه کلمه د مع د اتصال لپاره ده.موږ خواب ورکوو **قُلْنَا: قَدْ تُذْكَرُ لِلتَّأَخُّرِ كَمَا فِي قَوْلِهِ تَعَالَى {فَإِنَّ مَعَ الْعُسْرِ يُسْرًا. إِنَّ مَعَ الْعُسْرِ يُسْرًا}** چې کله د تاخر لپاره ذکرکولې شي .لکه څنګه چې د الله تعالی قول((إِنَّ مَعَ الْعُسْرِ يُسْرًا)) الآیة کې دی .بې شکه د سختئ نه روسته آسانی ده **فَتُحْمَلُ عَلَيْهِ بِدَلِيلِ مَا ذَكَرْنَا مِنْ مَعْنَى الشَّرْطِ** نو( لفظ د مع) په روستنی باندې محمول کولې شي .د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ بیان کړو .یعنی معنی شرط.

**حل اللغة:** ① **العسر** ګوانتیا ،مشکل ② **یسر** آسانتیا ]

**تشریح:**- دا عبارت یواشکال دې.اشکال دا دې.چه څه خبره لاپاته ده.خبره دا ده.چه عبارت کې کلمه د [مع] ذکرشوې ده.اوکلمه د [مع] داتصال لپاره وي .نومطلب دا شو.چه عتق اوطلاق دواړه به په یوخائې واقع کیږي .یوبه د بل نه روسته نه واقع کیږي .

ﷲخواب.وړاندې دا قاعده تیره شوې ده.چه کلمه د [مع] که د مصدرسره یوځائې ذکرشي .نودا کلمه د [بعد] معنی ورکوي .لکه دالله تعالی په قول((فَإِنَّ مَعَ الْعُسْرِ يُسْرًا)) کې [عسر] مصدردې.په دې وجه د [مع]

معنی د [بعد] ده.یعنی سختي پسې راحت وی .دا معنی صحیح ده.ګنی که داسې نشی. نو عسر اویسردواړه ضدین به په یوځاۍ کي جمع شی .کومه چې محال ده.نوپه عبارت کي هم چونکه مع د عتق مصدر سره ذکرشوې دي.نوځکه به د [بعد] په معنی باندې محمول وی .

## په صبا پورې تعلیق د طلاق اوتعلیق د عتاق

وَلَوْقَالَ اوکه ( خاوند خپلې ښځې ته چې د غیر وینځه ده) اوونیل إِذَا جَاءَ غَدٌ فَأَنْتِ طَالِقٌ ثِنْتَيْنِ کله چې صباله ورځ راشی .نو ته دوې [دوه] طلاق والا ئې وَقَالَ الْمَوْلَى: إِذَا جَاءَ غَدٌ فَأَنْتِ حُرَّةٌ او مولا اوونیل.چه کله چې صباله ورځ راشی .ته آزاده ئې فَجَاءَ الْغَدُ نو صباله ورځ راغله لَمْ تَحِلَّ لَهُ حَتَّى تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهُ نودا ددې خاوند لپاره حلال نه ده.ترڅو چې د دوهم خاوند سره نکاح اوکړی وَعِدَّتُهَا ثَلَاثُ حِيَضٍ او ددې عدت درې حیضه دی وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رحمهما الله (1) اودا د ابوحنیفه او ابویوسف رحمهما الله په نیز دی

**تشریح:**- صورت د مسئلې دا دې.چه خاوند خپلې ښځي ته اووائی .کومه چې د بل چا وینزه وی .[اذا جآء غدا فانت طالق ثنتین] اومالك ورته اووائی .[اذا جآء غدا فانت حرة] نوچه کله سهار شی .په دې ښځه باندې دوې [دوه] مغلظه طلاقونه واقع کیږی .بغیرد حلالې نه.دې سره دوباره نکاح کول صحیح نه دی .اوددې عدت به درې حیضه وی . دا د شیخینو رحمهما الله مذهب دې.

وَقَالَ مُحَمَّدٌ رحمه الله: زَوْجُهَا يَمْلِكُ الرَّجْعَةَ عَلَيْهَا او امام محمد رحمه الله فرمائی .چه ددې خاوند به د رجعت مالك وی لِأَنَّ الزَّوْجَ قَرَنَ الْإِيقَاعَ بِإِعْتَاقِ الْمَوْلَى ځکه چې خاوند ( د طلاق) واقع کول د مولا آزادولو سره ملاؤ کړی دی ، حَيْثُ عَلَّقَهُ بِالشَّرْطِ الَّذِي عَلَّقَ بِهِ الْمَوْلَى الْعِتْقَ ځکه چې ایقاع ئې په هغه شرط باندې معلق کړې ده.په کوم چې مولا آزادی معلق کړله ، وَإِنَّمَا يَنْعَقِدُ الْمُعَلَّقُ سَبَبًا عِنْدَ الشَّرْطِ او معلق د شرط په وخت سبب ( جوړیږی ) منعقد کیږی وَالْعِتْقُ يُقَارِنُ الْإِعْتَاقَ او آزادیدل مقارن دی .د آزادولو لِأَنَّهُ عِلَّتُهُ أَصْلُهُ الِاسْتِطَاعَةُ مَعَ الْفِعْلِ ځکه چې آزادول د آزادیدلو علت دې او ددې علت دادې.چه استطاعت مع الفعل وی فَيَكُونُ التَّطْلِيقُ مُقَارِنًا لِلْعِتْقِ ضَرُورَةً نو طلاق ورکول به د عتق مقارن وی فَتَطْلُقُ بَعْدَ الْعِتْقِ نود عتق نه روسته به طلاق واقع کیږی فَصَارَ كَالْمَسْأَلَةِ الْأُولَى نود مسئله اولی پشان شوه وَلِهَذَا تُقَدَّرُ عِدَّتُهَا بِثَلَاثِ حِيَضٍ او هم په دې وجه به ددې د عدت اندازه لګولې شی .په عین حیض سره

**حل اللغة*** ① قرن: تړلې دې مولبنتی کړې دې ② الایقاع: واقع کول ③ الاعتاق: آزادول]

**تشریح:**- امام محمد رحمه الله فرمائی .چه دوې [دوه] طلاقه رجعی به واقع کیږی . او خاوند ته به د رجعت اختیار وی .

§ په کتاب کي چې دامام محمد رحمه الله د اړخه کوم دلیل ذکر شوې دي.هغه صحیح نه دي.لکه چې اوس به معلوم شی .خوزه هم د مصنف په تابعدارئ کي د هغې وضاحت کوی .د دلیل حاصل دا دې.چه خاوند د طلاق واقع کیدل د مالك د اعتاق سره یوځاي کړل اوذکرئې کړل.نود طلاق واقع کیدل ئې په هغه شرط پورې معلق کړل.په کوم پورې چې مالك اعتاق معلق کړې وو.یعنی د صبا راتګ .اوچه څه پورې ئې معلق کړې دي.هغه به د شرط د وجود په وخت کي سبب ګرځی اومنعقد کیږی به.اوعتق مقارن دې د اعتاق سره.ځکه چې اعتاق د عتق علت دې.اود علت اصل قدرت علی الفعل دې.یعنی د بنده نه د فعل صدور په هغه وخت کي کیږی .چه هغه دده په قدرت کي وی .نومعلومه شوه.چه ددې فعل قدرت هم علت دې.نوثابته شوه.چه علت د فعل نه جلا کیږی نه.بلکه فعل سره وی .

(1) القول الراجح هو قول الشیخین رحمهما الله کذا فی الکفایة (۳۸۶\۳) والعنایة (۳۸٤\۳) وردالمحتار(۴۸۵\۲) والهندیة (۳۶۹\۱) نقلاً عن القول الراجح (۳۱۹\۱)-



§ صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی .چه چونکه د تطلیق اواعتاق دواړو لپاره یو شرط دي.نوځکه به تطلیق مقارن وی داعتاق سره.اواعتاق به مقارن وی دعتق.اودمقارن ،مقارن،مقارن وی .نوتطلیق به د عتق مقارن شی .اوطلاق چونکه د تطلیق حکم دې.نوځکه به طلاق د تطلیق نه روسته وی .اوتطلیق اوعتق دواړه مقارن دی . نوځکه به طلاق د عتق نه روسته واقع کیږی .نودا مسئله د وړاندینئ مسئلې پشان شوه.لکه څنګه چې هلته دوې [دوه] طلاقه د آزادئ په حالت کي واقع شوی وو.نودغه ډول دلته به هم دوې [دوه] طلاقه د آزادئ نه روسته واقع کیږی .اوآزده ښځه په دوو طلاقو سره مغلظه کیږی نه.نودا هم دلیل نشو.هم دا وجه ده.چه شیخین رحمهما الله هم ددې ښځې عدت درې حیضه ګرځوی .

§ دامام محمد رحمه الله په دلیل کي [فتطلق بعدالعتق] غلط دي.ځکه چې لکه څنګه اعتاق د عتق علت دي.دغه ډول تطلیق د طلاق علت دې.نوهرکله چې تطلیق دعتق مقارن دې.نوطلاق به هم د عتق مقارن وی .نووقوع د طلاق اووقوع د عتق به دواړه په یوځاني وی .اووقوع د عتق د رقیت په حالت کي واقع شوی دی .نووقوع د طلاق به هم د رقیت په حالت کي واقع شوې وی .اود وینزې لپاره دوې [دوه] طلاقه حرمت مغلظه ثابتوی .نودامام محمد رحمه الله د دې دلیل په رڼا کي طلاق رجعی ثابتول نه صحیح کیږی .

§ صاحب دفتح القدیر رحمه الله دامام محمد رحمه الله لپاره دا دلیل ذکرکړې دې.چه د مالك قول چې [أنت حرة] اود خاوند قول چې [أنت طالق ثنتین] دواړه د سهار په راتلو پورې معلق دی .نواعتاق اوتطلیق دواړه به په یوه زمانه کي موجود شی .اوچونکه [أنت حرة] مختصر دې.د [أنت طالق ثنتین] په مقابله کي .نوپه وجود کي به مختصرچه [أنت حرة] وړاندې وی په غیرمختصر چې [أنت طالق ثنتین] باندې.نولکه چې دواړه طلاقونه د آزادیدو نه روسته واقع شول.اود آزادئ نه روسته د دوو طلاقو په واقع کیدو سره حرمت غلیظه نه ثابتیږی .ددې امله امام محمد رحمه الله فرمائی .چه په دې صورت کي به دوې [دوه] طلاق رجعی واقع کیږی .

وَلَهُمَا أَنَّهُ عَلَّقَ الطَّلَاقَ بِمَا عَلَّقَ بِهِ الْمَوْلَى الْعِتْقَ اود شیخینو رحمهما الله دلیل دادې.چه طلاق ئې په هغه شی باندې معلق کړې دي.په کوم چې مولا عتق معلق کړې دي ثُمَّ الْعِتْقُ يُصَادِفُهَا وَهِيَ أَمَةٌ بیا به عتق دا ښځه بیا مومی. په داسې حال کي چې دا وینځه ده فَكَذَا الطَّلَاقُ وَالطَّلْقَتَانِ تُحَرِّمَانِ الْأَمَةَ حُرْمَةً غَلِيظَةً نوهم دغه ډول طلاق او دوې [دوه] طلاقونه وینځه په حرمت غلیظه سره حراموی

**حل اللغة*** ① یصادف: مقابله کوی ② غلیظة: سخت]

**تشریح:**- دشیخینو رحمهما الله دلیل دا دې.چه په کوم څیزپورې مالك عتق معلق کړلو.هم په هغه څیزپورې خاوند طلاق معلق کړې دي.اوعتق د وینزیت په حالت کي واقع کیږی .نوطلاق به هم د وینزیت په حالت کي واقع کیږی .اودوې [دوه] طلاقه د وینزې لپاره حرمت غلیظه ثابتوی .نوځکه به په دې مسئله کي د وینزې لپاره دوې [دوه] طلاقه غلیظه ثابت شی .

بِخِلَافِ الْمَسْأَلَةِ الْأُولَى .په خلاف د رومبئ مسئلې لِأَنَّهُ عَلَّقَ التَّطْلِيقَ بِإِعْتَاقِ الْمَوْلَى ځکه چې تطلیق د مولا په اعتاق باندې معلق کړې دې فَيَقَعُ الطَّلَاقُ بَعْدَ الْعِتْقِ عَلَى مَا قَرَّرْنَاهُ نو طلاق به دعتق نه روسته واقع کیږی .هم په هغه تفصیل باندې کوم چې موږ ثابت کړې دې.

**تشریح:**- په خلاف د لومړئ مسئلې.ځکه چې په هغې کي تطلیق د مالك په اعتاق پورې معلق کړې شوې وو.نولکه اعتاق شرط اوتطلیق جزاء شوه.اوجزاء د شرط نه روسته واقع کیږی .نوطلاق به د عتق نه روسته واقع کیږی .

وَبِخِلَافِ الْعِدَّةِ په خلاف د عدت لِأَنَّهُ يُؤْخَذُ فِيهَا بِالِاحْتِيَاطِ ځکه چې په عدت کي احتیاط کولای شی وَكَذَا الْحُرْمَةُ الْغَلِيظَةُ يُؤْخَذُ فِيهَا بِالِاحْتِيَاطِ او حرمت غلیظه په دې کي هم احتیاط اختیارولې شی

تشریح:- په خلاف دعدت ځکه چې په عدت کې په احتیاط باندې عمل کولې شی .اواحتیاط د په واجب کولوکې دې د دوو حیضونوپه واجب کولوکې نه دې.اوپه حرمت غلیظه کې هم د احتیاط تقاضا دا ده.چه ښځه په دووطلاقو سره مغلظه شی .

17

وَلَاوَجْهَ إِلَى مَاقَالَ او ددې هیڅ وجه نشته.کوم چې امام محمد رحمه الله اوفرمائیل لِأَنَّ الْعِتْقَ لَوْكَانَ يُقَارِنُ الْإِعْتَاقَ ځکه که عتق مقارن دې.د اعتاق لِأَنَّهُ عِلَّتُهُ ځکه چې اعتاق د عتق علت دې فَالطَّلَاقُ يُقَارِنُ التَّطْلِيقَ نو طلاق د تطلیق مقارن دې لِأَنَّهُ عِلَّتُهُ فَيَقْتَرِنَانِ ځکه چې تطلیق د طلاق علت دې.نو دواړه به مقارن وی .

تشریح:- دامام محمد رحمه الله د دلیل خواب ورکوی اوفرمائی .که عتق مقارن دې د اعتاق،ځکه چې اعتاق د عتق علت دې.نوطلاق مقارن دې د تطلیق سره.ځکه چې تطلیق دطلاق علت دې.نوپه طلاق اوعتق دواړوکې به اتصال وی .والله اعلم بالصواب.

## په اشاره باندې طلاق ورکول

فصل:في تشبيه الطلاق ( دا) فصل د طلاق تشبیه ور کاوه او ددې د وصف بیانولو ( په بیان کې) دې وَمَنْ قَالَ لِامْرَأَتِهِ: أَنْتِ طَالِقٌ هٰكَذَا اوکوم سړی چې خپلې منکوحې ته اوونیل.ته دومره طلاق والا یې يُشِيرُ بِالْإِبْهَامِ وَالسَّبَّابَةِ وَالْوُسْطَى فَهِيَ ثَلَاثٌ اشاره کوی بټه (مټه) ګوته،د شهادت ( مسواکه) ګوته او په منځنۍ ګوتې سره،نو دا درې ( طلاقونه) دی

تشریح:- که یوکس خپلې ښځې ته اوونیل.چه [أنت طالق هکـــذا] اوپه بټه (مټه) ،مسواکه اومینځنۍ ګوته یې اشاره اوکړله.نوپه دې صورت کې به درې طلاقه واقع کیږی .

لِأَنَّ الْإِشَارَةَ بِالْأَصَابِعِ تُفِيدُ الْعِلْمَ بِالْعَدَدِ فِي مَجْرَى الْعَادَةِ ځکه چې په ګوتو سره اشاره په عامه توګه باندې د عدد شمار پیژندلو فائده ورکوی إِذَا اقْتَرَنَتْ بِالْعَدَدِ الْمُبْهَمِ کله چې اشاره عدد مبهم سره متصل وی قَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {الشَّهْرُ هٰكَذَا وَهٰكَذَا وَهٰكَذَا} [1]نبی کریم ﷺ فرمائی .میاشت دومره ده.دومره ده،او دومره ده...الحدیث.

حل اللغة:* ① الاصابع: جمع داصبع: ګوته ]

تشریح:-دلیل دا دې.چه کله اشاره د مبهم عدد سره متصل شی .نوپه عادت کې اشاره په عدد د علم فائده ورکوی .اود عدد پیژنګلو لپاره په ګوتو باندې اشاره کافی ده.ددې تائیدد هغه حدیث نه هم کیږی .چه یوځل نبی ﷺ ددې لپاره چې میاشت د یوکم دیرشو ورځو ده.داسې اوفرمائیل.[الشهرهکذا وهکذا وهکذا] په اولنو دوو صورتونوکې یې د لاسونوپه ټولوګوتوسره اشاره اوکړله.اوپه آخری صورت کې یې دیولاس بټه (مټه) ګوته بنده کړله.

وَإِنْ أَشَارَ بِوَاحِدَةٍ فَهِيَ وَاحِدَةٌ اوکه اشاره یې اوکړله.په یوه ( ګوته سره).نو یو( طلاق) دې وَإِنْ أَشَارَ بِثِنْتَيْنِ فَهِيَ ثِنْتَانِ لِمَا قُلْنَا اوکه اشاره یې اوکړله.په دوې [دوه] ( ګوتو) سره.نو دوې [دوه] ( طلاقه) دی .د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ ذکرکړو وَالْإِشَارَةُ تَقَعُ بِالْمَنْشُورَةِ مِنْهَا او اشاره په کلاؤ ګوتو سره واقع کیږی

تشریح:- په مسئله کې څه مشکل نشته.

وَقِيلَ: إِذَا أَشَارَ بِظُهُورِهَا او وئیلی شوی دی .چه کله یې اشاره اوکړله.د ګوتو په شا سره فَبِالْمَضْمُومَةِ مِنْهَا نو په بندو ګوتو سره به ( اشاره واقع) وی ،وَإِذَا كَانَ تَقَعُ الْإِشَارَةُ بِالْمَنْشُورَةِ مِنْهَا اوکله چې اشاره په کلاؤ ګوتو سره واقع شوه فَلَوْ نَوَى الْإِشَارَةَ بِالْمَضْمُومَتَيْنِ نوکه د نیت اشاره یې اوکړله.په دوې [دوه] بندو ( ګوتو) سره يُصَدَّقُ دِيَانَةً لَا قَضَاءً نو

---

[1]) من حدیث ابن عمر رضي الله عنهما أخرجه البخاری فی الصوم باب ۱۱ ومسلم فی الصیام رقم ۱۶ وأبوداود فی الصوم باب ٤ )

جلد-3



دیانة به تصدیق کولې شی .قضاء ( به تصدیق) نه کیږی وَكَذَا إِذَا نَوَى الْإِشَارَةَ بِالْكَفِّ اوهم دغه ډول ( تصدیق به کولې شی )کله چې نیت د اشارې اوکړی په اورغوی ( تلی ) سره حَتَّى يَقَعَ فِي الْأُولَى ثِنْتَانِ دِيَانَةً تردې چې واقع کیږی به په اولنی (صورت) کې دوې [دوه] ( طلاقه) دیانةً وَفِي الثَّانِيَةِ وَاحِدَةٌ او په دوهم (صورت) کې یو (طلاق) لِأَنَّهُ يَحْتَمِلُهُ لٰكِنَّهُ خِلَافُ الظَّاهِرِ ځکه چې هغه ددې احتمال لری .خود ظاهر خلاف دې

17

حل اللغة:* ① ظهور: جمع د ظهر: شا ② الكف: ورغوې ③ المضمومتين: تثنیه د مضمومة: ورغلې شوې]

تشریح:- بعضې حضراتوفرمائیلی دی .که د ګوتو په شا یې اشاره اوکړله.نود طلاق په شمارکې به بندې ګوتې معتبر وی .فرمائی .چه په کوم صورت کې یې کهولاؤ درې ګوتوباندې اشاره اوکړله.نوکه په دې صورت کې یې د دوو بندو ګوتویا د ورغوی نیت کړې وی .نودیانةً یې تصدیق کولې شی .خوقضاءً به نشی کولې.نوپه اولنی صورت کې به دیانة دوې [دوه] واقع کیږی .ځکه چې کلام په بندوګوتواوپه ورغوی د اشارې کاوه احتمال لری .خوچونکه خلاف ظاهردې.اودا وړاندې تیرشوی دی .که کلام د ظاهرخلاف وی .نوهغه به دیانتاً معتبروی اوقضاء به معتبر نه وی .

وَلَوْ لَمْ يَقُلْ هٰكَذَا تَقَعُ وَاحِدَةٌ اوکه،هکذا،( دومره) یې او نه وئیل.نو یو به واقع کیږی لِأَنَّهُ لَمْ يَقْتَرِنْ بِالْعَدَدِ الْمُبْهَمِ ځکه چې عدد مبهم سره متصل نه دې فَبَقِيَ الْاِعْتِبَارُ بِقَوْلِهِ: أَنْتِ طَالِقٌ نو دده د قول، انت طالق، اعتبار پاته پاتې شو .

تشریح:- اوکه د [أنت طـــالق] نه روسته یې [هکذا] اونه وئیل.اوپه درې ګوتوسره اشاره موجود وه.نوصرف یوطلاق به واقع کیږی .ځکه چې اشاره د عدد مبهم سره متصل نشوه.نوصرف د [أنت طالق] اعتبار به کولې شی .اوپه دې سره به صرف یورجعی طلاق واقع کیدای شی .نوځکه مونږوایو.چه په دې صورت کې صرف یو طلاق واقع کیږی .

## طلاق په شدت یا زیادت سره موصوف کول

وَإِذَا وَصَفَ الطَّلَاقَ بِضَرْبٍ مِنَ الشِّدَّةِ أَوِ الزِّيَادَةِ كَانَ بَائِنًا اوکله یې چې طلاق په وصف زیادت او شدت سره متصف کړو.نو بائن به وی مِثْلُ أَنْ يَقُولَ: أَنْتِ طَالِقٌ بَائِنٌ أَوِ الْبَتَّةَ مثلاً وې وئیل.[ أنت طالق بائن، یا البتة]

تشریح:- ①مسئله که طلاق د شدت یا زیادت په صفت سره متصف کړی . مثلاً چې اووائی .[أنت طالق بـــائن] یا [أنت طالق البتة] نوپه دې صورت کې به طلاق بائن واقع کیږی

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رحمه الله: يَقَعُ رَجْعِيًّا إِذَا كَانَ بَعْدَ الدُّخُولِ بِهَا او امام شافعی رحمه الله فرمائی .چه رجعی به واقع کیږی .کله چې د دخول نه روسته وی لِأَنَّ الطَّلَاقَ شُرِعَ مُعْقِبًا لِلرَّجْعَةِ ځکه چې طلاق په داسې حال کې مشروع شوې دې.چه ددې نه روسته رجعت وی فَكَانَ وَصْفُهُ بِالْبَيْنُونَةِ خِلَافَ الْمَشْرُوعِ فَيَلْغُو نو دده د بینونت وصف به خلاف مشروع وی .نو لغو به وی كَمَا إِذَا قَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ عَلَى أَنْ لَا رَجْعَةَ لِي عَلَيْكِ لکه کله چې اووائی .چه تاته طلاق دې.په دې شرط چې ما ته په تا باندې ( حق) د رجعت نشته

حل اللغة:* ① معقبا: روستو② البینونة: جداوالې ]

تشریح:- امام شافعی رحمه الله فرمائی .چه که د دخول نه روسته وی .نوطلاق رجعی واقع کیږی .

①د امام شافعی رحمه الله دلیل دا دې.چه صریحی طلاق په داسې حال کې مشروع شوې دې.چه [illegible] نه روسته رجعت وی .نوصریحی طلاق د بینونت په صفت باندې موصوف کول د شریعت خلاف توصیف دې.نولغو کولې به شی .نودامام شافعی رحمه الله په نیزدا وصف لغو دې.اودا داسې شوه لکه چې یوکس خپلې ښځې ته اووائی .[أنت طالق علی أن لارجعة لی علیـــك] نولکه څنګه چې په دې صورت کې طلاق رجعی واقع کیږی

جلد-3

(دده دې قول لره څه اعتبار نشته.چه لارجعة) نودغه ډول په [أنت طالق بـائن] کي به هم طلاق رجعی واقع کیږی .

وَلَنَا أَنَّهُ وَصَفَهُ بِمَا يَحْتَمِلُهُ لَفْظُهُ او زموږ دلیل دادي.چه طلاق ني موصوف کړو.هغه وصف سره.د کوم چې لفظ د طلاق احتمال لری أَلَا تَرَى أَنَّ الْبَيْنُونَةَ قَبْلَ الدُّخُولِ بِهَا وَبَعْدَ الْعِدَّةِ تَحْصُلُ بِهِ آیا نه ګوري.چه بینونت د دخول نه وړاندي اود عدت نه روسته په لفظ د تطلیق سره حاصلیږی فَيَكُونُ هَذَا الْوَصْفُ لِتَعْيِينِ أَحَدِ الْمُحْتَمَلَيْنِ نودا وصف به په دوې [دوه] احتمالاتو کي د یو متعین کاوه لپاره وی

تشریح:- زموږ دلیل دادي.چه طلاق داسې شی سره متصف شوې دې.چه ددې لفظ د طلاق احتمال لری.حاصل دادي.چه په[ انت طالق] کي د بینونت احتمال موجود دی.لکه تاسو غور اوکړئ.که د دخول نه وړاندي صریحی طلاق ورکړې شو.نو طلاق بائن واقع کیږی .دغه ډول که د دخول نه روسته طلاق ورکړې شو.نو د عدت نه روسته به په دې لفظ سره بینونت حاصلیږی .که لفظ د طلاق د بائنه کیدلو احتمال نه لرلو.نو په دې سره به بینونیت نه حاصلیدلو.نودا وصف بائن یا وصف البته دوې [دوه] احتمالاتو کي یو متعین کول دی .

وَمَسْأَلَةُ الرَّجْعَةِ مَمْنُوعَةٌ فَتَقَعُ وَاحِدَةٌ بَائِنَةٌ اود رجعت مسئله تسلیم نه ده إِذَا لَمْ تَكُنْ لَهُ نِيَّةٌ أَوْ نَوَى الثِّنْتَيْنِ نو که هیڅ نیت ني اونکړو.یاد دوې [دوه] نیت ني اوکړو أَمَّا إِذَا نَوَى الثَّلَاثَ فَثَلَاثٌ لِمَا مَرَّ مِنْ قَبْلُ اوکه د دریو نیت ني کړي وی نو دري به واقع کیږی لکه څنګه چې تیر شو د دي نه وړاندي

تشریح:-[ و مسئلة الرجعة........] سره د امام شافعی رحمه الله خواب دی.حاصل د ځواب دادې.چه ددوی دا وئیل چې [ أنت طالق علي ان لا رجعة لی علیك] سره طلاق رجعی واقع کیږی .دا موږ نه منو.بلکه که خاوند هیڅ نیت اونکړو.یا نې د دوو نیت اوکړو.نو په دې کلام سره به یو بائن واقع کیږی .اوکه د دریونیت نې کړې دې.نو دري طلاقونه به واقع کیږی .دلیل د باب ایقاع الطلاق لاندې تیر شوې دی.

وَلَوْ عَنَى بِقَوْلِهِ: أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً اوکه قصد کړې نې وی په قول خپله سره چې ته دې طلاقه نې په یو طلاق سره وَبِقَوْلِهِ بَائِنٌ أَوِ الْبَتَّةَ أُخْرَى او که په بائن یا البته سره نې د دویم( نیت اوکړو). تَقَعُ تَطْلِيقَتَانِ بَائِنَتَانِ نو دوې [دوه] بائنه به واقع کیږی لِأَنَّ هَذَا الْوَصْفَ يَصْلُحُ لِابْتِدَاءِ الْإِيقَاعِ څکه چې دا وصف په ابتداء کي د( طلاق) واقع کاوه صلاحیت لری .

تشریح:- علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی .چه په [ أنت طالق بائن] یا [ البته] کي که په،انت طالق،سره نې د یو طلاق اراده کړې وی .اود بائن یا البته سره د دویم، نو دوې [دوه] طلاقه بائن به واقع کیږی .دلیل دادې.چه لفظ د بائن او البته سره ابتداء طلاق واقع کیداې شی .لکه که یو کس خپل ښځې ته،انت بائن، اووئیل.اود طلاق نیت نې اوکړو.نو طلاق به واقع کیږی .نو دغه ډول دلته کي هم بائن سره دوهم طلاق مراد اخستل صحیح دی .او چونکه طلاق ثانیه بائنه دې.په دې وجه به اولی هم بائنه وی .څکه چې په یوه ښځه کي رجعی او بائنه دواړه نشی جمع کیدې.

## د فحش په لفظ سره دطلاق ورکول

وَكَذَا إِذَا قَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ أَفْحَشَ الطَّلَاقِ او هم دغه ډول ( طلاق بائن به واقع کیږی ) کله چې اووائی .[ انت طالق أفحش الطلاق ] لِأَنَّهُ إِنَّمَا يُوصَفُ بِهَذَا الْوَصْفِ بِاعْتِبَارِ أَثَرِهِ څکه چې طلاق په دې وصف سره متصف کړې شوې دې.ددې د اثر په اعتبار سره وَهُوَ الْبَيْنُونَةُ فِي الْحَالِ فَصَارَ كَقَوْلِهِ بَائِنٌ او هغه اثر فی الحال بینونت دې.نو داسې شوه.لکه دده قول بائن وَكَذَا إِذَا قَالَ أَخْبَثَ الطَّلَاقِ أَوْ أَسْوَأَهُ لِمَا ذَكَرْنَا اوهم دغه ډول ( به طلاق واقع کیږی ) کله (اووائی )،اخبث الطلاق، یا ،اسوء الطلاق،د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ ذکر کړې دي



تشریح:- [أنت طالق أفحش الطلاق] په څلورو واړو احکامو کي په [أنت طالق بائن] باندې معطوف دی.یعنی که نیت نې نه وی کړې.یا نې د دوو نیت کړې وی .نو یو طلاق بائن به واقع کیږی .اوکه د دریو نیت نې کړې وی .نودرې به واقع کیږی .اوکه په [أنت طالق] سره نې د یو طلاق نیت کړې وی .اوپه [أفحش الطلاق] نې د دوهم طلاق نیت کړې وی .نودوې [دوه] طلاق بائن به واقع کیږی .هم دا حکم د [أخبث الطلاق] او [اسوء الطـلاق] هم دې.په دې اوصافوسره د طلاق بائن واقع کیدو وجه دا ده.چه طلاق په دې وصف سره متصف شوې دې.ددې دائرپه اعتبارسره،اوهغه اثرفي الحال د بینوت کیدل پکار دی .نودا د بائن پشان شو.

وَكَذَا إِذَا قَالَ طَلَاقَ الشَّيْطَانِ أَوْ طَلَاقَ الْبِدْعَةِ .اوهم دغه ډول کله چې اووائی ،،طلاق الشیطان، یا ،طلاق البدعة لِأَنَّ الرَّجْعِيَّ هُوَ السُّنِّيُّ څکه چې رجعی خو سنت دي فَيَكُونُ قَوْلُهُ: الْبِدْعَةَ وَطَلَاقَ الشَّيْطَانِ بَائِنًا[1] نو بدعت او طلاق الشیطان به بائن وی

تشریح:-دغه ډول که یو کس خپلې ښځې ته اووئیل.چه [أنت طالق طلاق الشيطان يا طلاق البدعة] نوپه دې صورت کي به هم یوطلاق بائن واقع کیږی .دلیل دا دې.چه طلاق رجعی خوطلاق سنت دې.نوطلاق بدعی اوطلاق شیطان به طلاق بائن وی .

دهدایه په عبارت کي معمولی غوندې تساهل دې.هغه دا چې رجعی مطلقا طلاق سنی نه دې.بلکه عام دې.ددې امله که یوکس په حالت دحیض کي په صریحی لفظ (دطلاق) سره طلاق ورکړلو.نودا به رجعی وی خوسنی نه.نومعلومه شوه.چه دا ضروری نه ده.چه رجعی وی نوسنی هم وی .

وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ فِي قَوْلِهِ: أَنْتِ طَالِقٌ لِلْبِدْعَةِ أَنَّهُ لَا يَكُونُ بَائِنًا إِلَّا بِالنِّيَّةِ اود ابویوسف رحمه الله نه روایت دې.چه دده قول، انت طالق للبدعة،کي به دا نه بائن کیږی .خو په نیت سره لِأَنَّ الْبِدْعَةَ قَدْ تَكُونُ مِنْ حَيْثُ الْإِيقَاعِ فِي حَالَةِ الْحَيْضِ څکه چې بدعت کله په دې حیثیت سره وی .چه دا په حالت د حیض کي واقع کړې شوې دي فَلَا بُدَّ مِنَ النِّيَّةِ نو نیت ضروری دي

تشریح:- دامام ابویوسف رحمه الله نه روایت دې.که یوکس خپلې ښځې ته اووئیل.[أنت طالق للبدعـة] نود بینونت د نیت کولونه بغیربه طلاق بائن نه واقع کیږی .څکه چې طلاق بدعی کله د بیونت د امله واقع کیږی .اوکله په حالت د حیض کي د طلاق ورکولوپه وجه واقع کیږی .نوځکه د بینونت متعین کاوه لپاره نیت ضروری دې.

وَعَنْ مُحَمَّدٍ رحمه الله أَنَّهُ إِذَا قَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ لِلْبِدْعَةِ أَوْ طَلَاقَ الشَّيْطَانِ يَكُونُ رَجْعِيًّا اود امام محمد رحمه الله نه نقل دی .چه کله اووائی .[ انت طالق للبدعه یا طلاق الشیطان] نو رجعی به وی لِأَنَّ هَذَا الْوَصْفَ قَدْ يَتَحَقَّقُ بِالطَّلَاقِ فِي حَالَةِ الْحَيْضِ څکه چې کله دا وصف متحقق کیږی .په حالت د حیض کي .په طلاق سره فَلَا تَثْبُتُ الْبَيْنُونَةُ بِالشَّكِّ نود شك په وجه به بینونت نه ثابتیږی .

تشریح:-اودامام محمد رحمه الله نه روایت دې.که ښځې ته نې اوئیل.چه [أنت طالق للبدعة يا أنت طالق طلاق الشيطان] نوپه دې سره طلاق رجعی واقع کیږی .څکه چې دا وصف کله د حیض په حالت کي طلاق ورکولوکي هم متحقق کیږی .نود شك د امله بینونت نه ثابتیږی .

## د غرښان طلاق ورکولوحکم

[1] القول الراجح هو قول أبی حنیفة رحمه الله كذا فی ردالمحتار(۲\۴۸۷) والخانیة (۲\۲۱۴) والهندیة (۱\۳۷۲) نقلاً عن القول الراجح (۱\۳۲۱)_

وَكَذَا إِذَا قَالَ: كَالْجَبَلِ اوهم دغه ډول ( به بائن واقع کيږي )کله چې اووائي .[ انت طالق كالجبل لِأَنَّ التَّشْبِيهَ بِهِ يُوجِبُ زِيَادَةً لَا مَحَالَةَ خکه چې د غر سره تشبيه ورکول يقيناً موجب د زيادت ده وَذَلِكَ بِإِثْبَاتِ زِيَادَةِ الْوَصْفِ اودا زيادت به په وصف ثابتولو سره کيږي وَكَذَا إِذَا قَالَ: مِثْلَ الْجَبَلِ لِمَا قُلْنَا او هم دغه ډول کله چې اووائي ،مثل الجبل،د هغه دليل په وجه کوم چې موږ ذکرکړو .

حل اللغة: ① الجبل: غر② لامحالة: خامخا]

تشريح:- مسئله،که يوکس خپلې ښځې ته اووئيل.[أنت طالق كالجبل يـا مثـل الجبـل]① نود طرفينو رحمهما الله په نيزيوطلاق بائن واقع کيږي .

①دطرفينو رحمهما الله دليل دا دې.چه د غرسره تشبيه ورکول موجب د شدت دې.اود زيادت دوې [دوه] صورتونه دی . يو زيادت په عدد کې اوبل زيادت په وصف کې .په غرکې د عدد په اعتبارد زيات احتمال نشته.خکه چې غرد خپل ذات په اعتبارسره يو دې.اوزيات په اعتبارد وصف سره به مراد وی .اود وصف په اعتبارسره زيادت بينونت دې.نوخکه به طلاق بائن واقع کيږي .

وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ رحمه الله :يَكُونُ رَجْعِيًّا او ابويوسف رحمه الله فرمائي .چه رجعی به وی لِأَنَّ الْجَبَلَ شَيْءٌ وَاحِدٌ خکه چې جبل ( غر) شئ واحد دې فَكَانَ تَشْبِيهًا بِهِ فِي تَوَحُّدِهِ نود غر سره تشبيه ددې په يو کيدلو کې ده.

تشريح:- دامام ابويوسف رحمه الله په نيزيوطلاق رجعی واقع کيږي .دليل دا دې.چه غريوخيزدې.نود دې سره په تشبيه ورکولوبه يوطلاق واقع کيږي .يعنی لکه ځنګه چې غريو دې.دغه ډول تاته هم يوطلاق دې.نوپه دې طلاق سره دا نه لازميږي .چه دا دې طلاق بائن وی .

### سخت ډول طلاق یا زر طلاقه ورکول

وَلَوْ قَالَ لَهَا: أَنْتِ طَالِقٌ أَشَدَّ الطَّلَاقِ أَوْ كَأَلْفٍ أَوْ مِلْءَ الْبَيْتِ اوکه ښځې ته ئې اووئيل.[ أنت طالق أشد الطلاق يا (أنت طالق) كألف يا ( أنت طالق) ملءالبيت] ( ډك کور) فَهِيَ وَاحِدَةٌ بَائِنَةٌ إِلَّا أَنْ يَنْوِيَ ثَلَاثًا نو يو بائنه به وی خوکه د ريو( طلاقو) نيت اوکړی .( نو دری به واقع کيږي ) أَمَّا الْأَوَّلُ بهرحال رومبې فَلِأَنَّهُ وَصَفَهُ بِالشِّدَّةِ خکه چې طلاق ئې متصف کړې دې.شدت سره وَهُوَ الْبَائِنُ او هغه ( شديد) بائن دې. لِأَنَّهُ لَا يَحْتَمِلُ الِانْتِقَاضَ وَالِارْتِفَاضَ خکه چې بائن د ماتيدلو او پريښولو احتمال نه لری أَمَّا الرَّجْعِيُّ فَيَحْتَمِلُهُ بهرحال رجعی نو هغه ددې احتمال لری وَإِنَّمَا تَصِحُّ نِيَّةُ الثَّلَاثِ لِذِكْرِهِ الْمَصْدَرَ اود دريو نيت به صحيح وی .ددې د مصدر ذکر کاوه په وجه وَأَمَّا الثَّانِي فَلِأَنَّهُ قَدْ يُرَادُ بِهَذَا التَّشْبِيهِ فِي الْقُوَّةِ تَارَةً او بهرحال ثانی نو خکه چې لکه په دې سره په وخت کې تشبيه مراد وی وَفِي الْعَدَدِ أُخْرَى، يُقَالُ هُوَ كَأَلْفِ رَجُلٍ وَيُرَادُ بِهِ الْقُوَّةُ اوکله په عدد کې .ونيلې شی .[ هو ألف رجل] او مراد ددې نه قوت وی فَتَصِحُّ نِيَّةُ الْأَمْرَيْنِ نود دواړو امرونو نيت کول صحيح دی وَعِنْدَ فَقْدَانِهَا يَثْبُتُ أَقَلُّهُمَا[1] اود نيت نه کاوه په وخت به په دې دواړوکې اول ثابتيږي

حل اللغة: ① الشدة: سختوالې ② ملاء البيت: ډکوالې د کور]

تشريح:- په عبارت کې د تشبيه درې صورتونه ذکرشوی دی .د درې واړو حکم دا دې.چه طلاق بائن به واقع کيږي .اوکه د دريونيت ئې کړې وی .نودرې به واقع کيږي .علامه مرغينانی رحمه الله د درې واړو لپاره دلائل ذکرکوی .

[1] القول الراجح هو قول الشيخين رحمهما الله كذا فى فتح القدير(٣\٢٩٠)والخانية (١\٢١٨) والدرالمختار(٢\٤٨٧)والهندية (١\٣٧٢) نقلاً القول الراجح (١\٣٢٢)_



①اوفرمانی .داول دليل دا دې.چه [أنت طالق أشد الطلاق] ئې د شدت په وصف موصوف کړې دې.اودا شدت د بينونت په ذريعه حاصليدې شی .خکه چې د بيونت نه روسته طلاق کې د ماتيدو احتمال نه وی . نوخکه مونږدابيو.چه په دې لفظ سره طلاق بائن واقع کيږي .البته که د دريونيت ئې کړې وی .نودرې به واقع کيږي .خکه چې دې کس مصدرطلاق ذکرکړي دې.تقديری عبارت دا دې.چه [أنت طالق طلاقـاً هوأشـد الطـلاق] اومصدر چونکه اسم جنس دې.د شديد د لفظ نه بغيرهم د دريواحتمال لری .نود شدت د وصف سره خو به خامخا د دريواحتمال لری .

①د دوهم مثال دا دې.چه [أنت طالق كألف] په دې سره طلاق بائن خکه واقع کيږي .چه کله په [كألف] سره په قوت کې تشبيه مراد وی .اوکله په عدد کې .لکه خلګ چې وائی .[هو ألف رجـل] هغه د يو زرکسانو برابر دې.دلته په قوت کې تشبيه ورکول مراد دی .بهرحال په دې کلام کې چې دوې [دوه] احتماله شول.نود دواړو نيت به صحيح وی .اوکه نيت نه وی .نوچه په دې دواړوکې کوم أقل وی .هغه به ثابتيږي .اوښکاره خبره ده.چه يوطلاق بائن اقل دې په نسبت سره درې طلاقو ته.نوخکه به يوطلاق بائن واقع کيږي .

وَعَنْ مُحَمَّدٍ رحمه الله أَنَّهُ يَقَعُ الثَّلَاثُ عِنْدَ عَدَمِ النِّيَّةِ اود امام محمد رحمه الله نه نقل دی .چه د عدم نيت په وخت به درې واقع کيږي لِأَنَّهُ عَدَدٌ خکه چې الف عدد دې فَيُرَادُ بِهِ التَّشْبِيهُ فِي الْعَدَدِ ظَاهِرًا نو ددې څخه به په ظاهرکې تشبيه فى العدد مراد وی فَصَارَ كَمَا إِذَا قَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ كَعَدَدِ أَلْفٍ نوداسې شوه.لکه کله چې اووائی .،انت طالق كعدد الف وَأَمَّا الثَّالِثُ او بهرحال دريم ،فَلِأَنَّ الشَّيْءَ قَدْ يَمْلَأُ الْبَيْتَ لِعِظَمِهِ فِي نَفْسِهِ وَقَدْ يَمْلَؤُهُ لِكَثْرَتِهِ نوخکه چې شئ کله کور ډکوی .د خپل غټ والی په وجه.اوکله ډکوی .د خپل کثرت ( ډيروالی ) په وجه. فَأَيُّ ذَلِكَ نَوَى صَحَّتْ نِيَّتُهُ نو چې کوم نيت هم کوی .دده نيت به صحيح وی وَعِنْدَ انْعِدَامِ النِّيَّةِ يَثْبُتُ الْأَقَلُّ اود نيت د معدوم کيدلو په وخت به اقل ثابتيږي

تشريح:- دامام محمد رحمه الله نه روايت دې.چه نيت ئې نه وی کړې.نودرې به واقع کيږي .خکه چې [كـألف] عدد. نو ښکاره ده چې ددې نه تشبيه په عدد کې مراد ده.نودا داسې شوه.لکه چې يوکس اووئيل.[أنت طالق كعدد الف] اوپه دې صورت کې په اتفاق سره درې طلاقه واقع کيږي .نود [كـألف] ونيلو په صورت کې هم درې طلاقه واقع کيدل پکاردی .

دريم مثال دا دې.[أنت طالق ملأ البيت] په دې سره د طلاق بائن واقع کيدو وجه دا ده.چه يوڅيز کور ډکوی .نوکله دغه څيزد جسامت په اعتبارسره غټ وی .اوکله داسې وی .چه زيات وی . نوکورډکوی .نوپه طلاق کې به غټ والی د ابانت په ذريعه ښکاره کيږي .اوکثرت به د دريوطلاقو په ذريعه ښکاره کيږي .نوپه دې دواړو احتمالاتوکې چې ئې د کوم يونيت اوکړلو.صحيح به وی .اوچه نيت ئې نه وی .نواقل به واقع کيږي .اوهغه يوطلاق بائن دې.

ثُمَّ الْأَصْلُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله أَنَّهُ مَتَى شَبَّهَ الطَّلَاقَ بِشَيْءٍ بيا د ابوحنيفه رحمه الله په نيز قاعده داده.چه کله د طلاق کوم يو شی سره تشبيه ورکړې شی يَقَعُ بَائِنًا: أَيَّ شَيْءٍ كَانَ الْمُشَبَّهُ بِهِ ذَكَرَ الْعِظَمَ أَوْ لَمْ يَذْكُرْ نو طلاق بائن واقع کيږي .مشبه به که هرڅه وی .( لفظ د) عظم ذکر وی .اوکه ذکر نه وی لِمَا مَرَّ أَنَّ التَّشْبِيهَ يَقْتَضِي زِيَادَةَ وَصْفٍ خکه تيرشو.چه تشبيه د وصف د زياتوالی تقاضا کوی

تشريح:- په دې عبارت سره صاحب دهدايه رحمه الله يوه ضابطه بيانوی .په کومه چې د درې واړه امامانو اوامام زفر رحمه الله اقوال مبنی دی .ضابطه دا ده.که طلاق په داسې وصف سره موصوف کړې شي .چه هغه په دغه وصف سره نه موصوف کيږي .نودا وصف به لغوه وی .اوطلاق رجعی به واقع کيږي .مثلاً ونې ونيل.[أنـت طالق طلاقا لا يقع عليك]

اوکه په داسې وصف سره طلاق موصوف کړې شي .چه په هغې باندې طلاق موصوف کیدای شي نو دې
دوې [دوه] صورتونه دی .یا به د زیادت فائده ورکوی اویا به نه ورکوی .که د زیادت فائده نه ورکوی نو په
دې صورت کې به هم طلاق رجعی واقع کیږی .مثلاً [ انت طالق أحسن ا لطلاق یا اجمل الطلاق یا اکمل الطلاق
یا أفضل الطلاق]
اوکه مفید د زیادت نه وی .① نو په داسې صورت کښې د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیزچه طلاق نه کله د
داسې شي سره تشبیه ورکړې شي .نو طلاق بائن به واقع کیږی .چه مشبه به هرڅیز وی .که لفظ د عظیم په
تشبیه کې موجود وی اوکه نه وی .دلیل وړاندې تیرشوې دې.چه مطلق زیادت د زیاتی وصف تقاضا کوی.

وَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ رحمه الله إِنْ ذَكَرَ الْعِظَمَ يَكُونُ بَائِنًا وَإِلَّا فَلَا أَيَّ شَيْءٍ كَانَ الْمُشَبَّهُ بِهِ. اود ابویوسف رحمه الله په نیز که
لفظ د) عظم ذکر دې.نو بائن به وی .ګنی نه به وی .مشبه به که هرڅه وی لِأَنَّ التَّشْبِيهَ قَدْ يَكُونُ فِي التَّوحِيدِ
عَلَى التَّجْرِيدِ خکه چې تشبیه کله په یو کیدلو کې وی .چه د عظمت د معنی نه خالی وی أَمَّا ذِكْرُ الْعِظَمِ فَلِلزِّيَادَةِ
لَا مَحَالَةَ.بهرحال د عظم ذکر یقیناً چې د زیادت لپاره دې

حل اللغة* ① العظم: عظمت،لوئې والې ② التجرید: خالی والې]
تشریح:- اوامام ابویوسف رحمه الله فرمائی .که لفظ د عظیم په مشبه به کې ذکروی .نو طلاق بائن به واقع کیږی
.اوکه نه وی .نو طلاق رجعی .که مشبه به هرڅه وی .خکه چې تشبیه کله د عظمت د معنی نه خالی وی
.اوصرف په یووالی کې وی .اولفظ د عظیم خویقینی ده.چه د زیادت معنی پیدا کوی .

وَعِنْدَ زُفَرَ رحمه الله إِنْ كَانَ الْمُشَبَّهُ بِهِ مِمَّا يُوصَفُ بِالْعِظَمِ عِنْدَ النَّاسِ اود امام زفر رحمه الله په نیز که مشبه به په هغه
څیزونو کې وی .کوم چې په غټ والی سره موصوف کیدای شي .د خلګو په نیز يَقَعُ بَائِنًا وَإِلَّا فَهُوَ رَجْعِيٌّ نو بائن به
واقع کیږی .ګنی دا رجعی دې

تشریح:- اوامام زفر رحمه الله فرمائی .که مشبه به داسې څیزوی .چه هغه د خلګو په نیزعظیم ګڼړلې شي .نو په دې
صورت کې به بائن واقع کیږی ګنی رجعی به واقع کیږی .که لفظ د عظیم ذکر وی اوکه نه وی

وَقِيلَ مُحَمَّدٌ رحمه الله مَعَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله او وئیلی شوی دی .چه امام محمد رحمه الله د ابوحنیفه رحمه الله سره دې وَقِيلَ مَعَ أَبِي
يُوسُفَ رحمه الله او وئیلی شوی دی .چه د ابویوسف رحمه الله سره دې وَبَيَانُهُ فِي قَوْلِهِ مِثْلَ رَأْسِ الْإِبْرَةِ اودا اختلاف به د دې
په دې قول، مثل راس الابره....إلخ، کې ښکاره کیږی مِثْلُ عِظَمِ رَأْسِ الْإِبْرَةِ یعنی دستنې د سر د غټ والی په
مثل ،وَمِثْلُ الْجَبَلِ مِثْلُ عِظَمِ الْجَبَلِ او د غر په مثل د غر د غټ والی په مثل.

حل اللغة* ① راس: سر ② الابرة: د ګنړلو ستن ]
تشریح:- دامام محمد رحمه الله قول مضطرب دې.دامام ابوحنیفه رحمه الله سره هم کیدای شي .اودامام ابویوسف رحمه الله
سره هم.
ددې اختلاف ثمره به په لاندینی مثالونوکې ښکاره کیږی .① [أنت طالق مثل راس الإبرة] په دې مثال کې د
امام ابوحنیفه رحمه الله په نیزطلاق بائن واقع کیږی .اودامام ابویوسف اوامام زفر رحمه الله په نیزطلاق رجعی واقع
کیږی .② او[أنت طالق مثل عظم راس الإبراة] په دې کې دامام ابوحنیفه اوامام ابویوسف رحمه الله په نیزطلاق بائن
واقع کیږی .اودامام زفر رحمه الله په نیزطلاق رجعی واقع کیږی .③ اوپه [أنت طالق مثل الجبل] په دې کې دامام
ابوحنیفه اوامام زفر رحمه الله په نیزطلاق بائن واقع کیږی .اودامام ابویوسف رحمه الله په نیزطلاق رجعی واقع کیږی.
④اوپه [أنت طالق مثل عظم الجبل] په دې کې د درې واړو په نیزطلاق بائن واقع کیږی .دامام ابوحنیفه رحمه الله په
...لګ په نظرکې غرلونې وی .والله اعلم بالصواب
...یه په وجه اودامام ابویوسف رحمه الله په نیزد عظم لفظ د ذکر د امله اود امام زفر رحمه الله په نیز خکه چې



## په شدت،عرضت اوطوالت په صفاتوسره طلاق ورکول

وَلَوْ قَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ تَطْلِيقَةً شَدِيدَةً أَوْ عَرِيضَةً أَوْ طَوِيلَةً اوکه وې وئیل ،انت طالق تطلیقة شدیدة، یا تطلیقة عریضة،
یا تطلیقة طویلة فَهِيَ وَاحِدَةٌ بَائِنَةٌ (١) نودا یو بائنه ده لِأَنَّ مَا لَا يُمْكِنُ تَدَارُكُهُ يَشْتَدُّ عَلَيْهِ وَهُوَ الْبَائِنُ خکه هغه
طلاق چې ددې تدارك ( راګرخول) ممکن نه وی .په خاوند به سخت وی .او هغه بائن دې وَمَا يَصْعُبُ تَدَارُكُهُ
يُقَالُ: لِهَذَا الْأَمْرِ طُولٌ وَعَرْضٌ اود کوم تدارك چې مشکل وی .هغې ته وئیلې شي .چه ددې كاراوږدوالې
اوپلنوالې دې.(یعنی ګران دې)

حل اللغة* ① شدیدة: سخت ② عریضة: پلن ③ طویلة: اوږد ④ یصعب ګران وی ⑤ تدارك رالاندې کول]
تشریح:-صورت د مسئلې دا دې.که طلاق ئې د شدید یا عریض یا طویل د صفت سره ذکرکړلو.نوپه دې
باندې طلاق بائن واقع کیږی .ددې دلیل دا دې.چه په خاوند باندې هغه طلاق سخت اوګران وی .په کوم کې
چې تدارك ،رجعت وغیره ممکن نه وی .اوښکاره ده. چې دا خبره په طلاق بائن سره حاصلیدې شي .
ددې امله په دې کلماتوسره د طلاق بائن حکم لګولې شي .اوګران کار چې تدارك ئې ممکن نه وی .د هغې
په اړه کې وئیلی شي .چه دا کار ډیراوږد اوپلن دی .

وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رحمه الله أَنَّهُ يَقَعُ بِهَا رَجْعِيَّةٌ اود ابویوسف رحمه الله نه روایت دې.چه په دې الفاظو سره به طلاق رجعی واقع
کیږی لِأَنَّ هَذَا الْوَصْفَ لَا يَلِيقُ بِهِ فَيَلْغُو خکه چې دا وصف دطلاق مناسب نه دې.نو لغو به وی وَلَوْ نَوَى الثَّلَاثَ فِي
هَذِهِ الْفُصُولِ اوکه په دې ټولو صورتونوکې ئې د دریو نیت اوکړو صَحَّتْ نِيَّتُهُ لِتَنَوُّعِ الْبَيْنُونَةِ نو دده نیت به صحیح
وی .د بینونت منقسم کیدلو په عَلَى مَا مَرَّ وَالْوَاقِعُ بِهَا بَائِنٌ او په دې الفاظو سره چې کوم واقع شي .هغه به بائن
وی .

حل اللغة* ① تنوع: ډول په ډول (قسما قسم ) کیدل]
تشریح:-دامام ابویوسف رحمه الله نه یوروایت دې.چه په دې الفاظوسره طلاق رجعی واقع کیږی .دلیل دا دې.چه دا
وصف د شدت وغیره طلاق سره مناسب نه دې.خکه چې دا صفات د اجسامو سره تعلق ساتی .اوطلاق د
قبیلې د اعراضو څنی دې.نودا وصف به لغو وی .اوپه [أنت طالق] سره به طلاق رجعی واقع شي .اوپه [أنت
بائن] وغیره ټولوصورتونوکې که د درې طلاقو نیت اوکړی .نودرې به واقع کیږی .خکه چې د بینونت دوې
[دوه] قسمونه دی .بینونت غلیظه اوبنونت خفیفه.نوکه دې کس په دریو نیت اوکړلو.نولګه چې په دواړو
قسمونوکې ئې د بینونت غلیظه نیت اوکړلو.اود داسې شي نیت کول صحیح وی .کوم چې دده د کلام
محتمل وی .نوخکه د درې طلاقونیت کول صحیح دی .

## غیرمدخول بها ښځې ته د طلاق ورکولوحکم

فصل: فِي الطَّلَاقِ قَبْلَ الدُّخُولِ ( دا) فصل ( ښځې ته) د دخول نه وړاندې د طلاق ورکولو( په بیان )کې دې:
وَإِذَا طَلَّقَ الرَّجُلُ امْرَأَتَهُ ثَلَاثًا قَبْلَ الدُّخُولِ بِهَا او کله چې سړی خپلې ښځې ته طلاق ورکړو.ددې سره د دخول نه
وړاندې وَقَعْنَ عَلَيْهَا نو په دې به واړه واقع کیږی لِأَنَّ الْوَاقِعَ مَصْدَرٌ مَحْذُوفٌ خکه چې واقع کیدونکې خو مصدر
محذوف دې

تشریح:- چونکه نکاح ددخول لپاره وی .نوخکه طلاق بعدالدخول اصل دې.اوقبل الدخول خلاف اصل
دې.مصنف د هدایه رحمه الله اصل اول بیان کړلو.اوخلاف الاصل وروستې بیانوی .

(١) القول الراجح هو قول الطرفين رحمهما الله كذا فى فتح القدير(٣٩١\٣) وردالمحتار(٤٨٧\٢) والبحرالرائق (٥٠٠\٣) والهندية (٣٧٢\١)
نقلاً عن القول الراجح (٣٢٣\١)-

مسئله دا ده.که یوکس خپلې ښځې ته د قبل الدخول نه وړاندې[أنت طالق ثلاثا] اوونیل.نو درې واړه طلاقه واقع کیږی .

لِأَنَّ مَعْنَاهُ طَلَاقًا ثَلَاثًا عَلَى مَا بَيَّنَّاهُ ځکه ددې معنی ده.طلاقاً ثلاثاً،موږ دا بیان کړی دی فَلَمْ يَكُنْ قَوْلُهُ أَنْتِ طَالِقٌ إِيقَاعًا عَلَى حِدَةٍ نو دده قول،انت طالق، به جلا ایقاع نه وی ،فَيَقَعْنَ جُمْلَةً نو واړه طلاقونه په یوځل واقع شو.

تشریح:-دلیل دا دې.چه وړاندې تیرشوی دی .کله چې وصف دطلاق د عدد سره یوځائې شی .نوطلاق به په عدد سره واقع کیږی .ځکه چې واقع کیدل د طلاق په اصل کې په محذوف مصدره سره کیږی .اودا عدد د هغې صفت وی .نود [أنت طالق ثلاثا] معنی دا شوه.چه [أنت طالق طلاقاً ثلاثاً] نوپه [أنت طالق] سره به جلا طلاق نه واقع کیږی .بلکه [طلاقاً ثلاثاً] سره به په یوځل درې طلاقه واقع کیږی .

**غیر مدخول بها ته درې طلاقه جلا جلا ورکول**

فَإِنْ فَرَّقَ الطَّلَاقَ بَانَتْ بِالْأُولَى نوکه ده طلاق متفرق کړو.نو په ړومبی سره به بائنه وی .وَلَمْ تَقَعِ الثَّانِيَةُ وَالثَّالِثَةُ او دوهم او دریم طلاق به نه واقع کیږی وَذَلِكَ مِثْلُ أَنْ يَقُولَ: أَنْتِ طَالِقٌ طَالِقٌ طَالِقٌ او دا مثلاً اووائی .،انت طالق، طالق، طالق

تشریح:- مسئله دا ده.که درې طلاقه نې جلا جلا کړل.مثلاً ونې ونیل.چه [أنت طالق طـالق طـالق] نې اوونیل. نوپه اولنی لفظ سره به ښځه بائنه شی .اوپه دوهم اودریم سره طلاق نه واقع کیږی .ځکه چې ددې دواړو د واقع کیدو لپاره ښځه محل پاتې نشو.نودا دواړه لغو شول.

لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدَةٍ إِيقَاعٌ عَلَى حِدَةٍ ځکه چې په دې کې هر یو جلا ایقاع ده إِذَا لَمْ يَذْكُرْ فِي آخِرِ كَلَامِهِ مَا يُغَيِّرُ صَدْرَهُ ځکه چې د خپل کلام په آخر کې ده داسې کلمه نه ده ذکرکړې.چه صدر د کلام بدل کړی حَتَّى يَتَوَقَّفَ عَلَيْهِ تردې چې ( واقع کیدل) په دې امر باندې موقوف دی فَتَقَعُ الْأُولَى فِي الْحَالِ نو ړومبې به فی الحال واقع کیږی .فَتُصَادِفُهَا الثَّانِيَةُ وَهِيَ مُبَانَةٌ بیا به دوهم دې ته رسیږی .په داسې حال کې چې دا بائنه ده.

تشریح:-دصاحب هدایه رحمه الله د دلیل نه وړاندې دا خبره ښه په ذهن کې کینوئ.چه که درې طلاقه جلا جلا کړې شی .اودکلام په آخرکې استثناء وغیره داسې څیزوی .چه هغه د کلام اول بدلوی .نوپه دې صورت کې به په غیرمدخول بها باندې هم درې طلاقه په یووخت واقع کیږی .

ددې مقدمې نه روسته د دلیل حاصل دا دې.چه [أنت طالق طالق طالق] کې هریوطلاق جلا جداواقع کول د طلاق دی .ځکه چې د کلام په آخرکې داسې څه څیزنشته.چه اول د کلام بدل کړی .اوپه کوم چې اول د کلام موقوف وی .نواولنې طلاق به فی الحال واقع شی .اوددې نه روسته دوهم اودریم چونکه په داسې حالت کې واقع کیږی .چه ښځه په اولنی طلاق سره بائنه شوې ده.اوداسې بائنه چې عدت پرې هم واجب نه دې.نودا محل د طلاق پاتې نشوه.

**غیرمدخول بها ته یوطلاق ورکول اوعدد نه وړاندې دهغې مړه کیدل**

وَكَذَا إِذَا قَالَ لَهَا: أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً وَوَاحِدَةً اوهم دغه ډول که وې ونیل ښځې ته.،انت طالق واحدة و واحدة وَقَعَتْ وَاحِدَةٌ لِمَا ذَكَرْنَا أَنَّهَا بَانَتْ بِالْأُولَى نو یو به واقع کیږی .د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ ذکرکړې دې.چه دا ښځه په ړومبی سره بائنه وی وَلَوْ قَالَ لَهَا: أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً اوکه دې ته نې اوونیل.،انت طالق واحدة فَمَاتَتْ قَبْلَ قَوْلِهِ وَاحِدَةً بیا دده د قول واحدة نه وړاندې مړه شوه كَانَ بَاطِلًا نو ( دا کلام) فضول شو

تشریح:- که خاوندخپلې غیرمدخول بها ښځې ته اوونیل.[أنت طالق واحدة أو واحدة]نوپه دې صورت کې



یوطلاق بائن واقع کیږی .وړاندې دلیل تیرشوې دې.چه دا په اولنی واحدة سره بائنه شوه.نو دوهم واحدة لغو شو.دویمه مسئله دا ده.که یوسړی خپلې غیرمدخول بها ښځې ته اوونیل چې ① [أنـت طـالق واحـدة] خود[واحدة] ونیلونه وړاندې مړه شوه.② یا نې ورته [أنت طالق ثنتين] اوونیل.اود [ثنتين] ونیلونه وړاندې هغه مړه شوه.③ یا نې [أنت طـالق ثلاثـا] اونیل.اود [ثلاثاً] لفظ ونیلونه وړاندې هغه مړه شوه.نوپه درې واړه صورتونوکې یوطلاق هم نه واقع کیږی .اودخاوندکلام عبث شو.

لِأَنَّهُ قَرَنَ الْوَصْفَ بِالْعَدَدِ ځکه چې (خاوند) د طلاق وصف عدد سره ملاوول اوغوښتل فَكَانَ الْوَاقِعُ هُوَ الْعَدَدَ نو عدد به واقع وی فَإِذَا مَاتَتْ قَبْلَ ذِكْرِ الْعَدَدِ نو کله چې دا د عدد ذکر کاوه نه وړاندې مړه شوه فَاتَ الْمَحَلُّ قَبْلَ الْإِيقَاعِ فَبَطَلَ نود( طلاق) واقع کاوه نه وړاندې محل فوت شو.نو( طلاق) فضول شو وَكَذَا لَوْ قَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ ثِنْتَيْنِ أَوْ ثَلَاثًا لِمَا بَيَّنَّا اوهم دغه ډول کله چې اووائی .،انت طالق ثنتین یا ثلاثاً،د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ بیان کړو

تشریح:-دلیل دا دې.چه خاوند د طلاق د وصف سره عدد یوځائې کړلو.اوپه واقع کیدود طلاق کې عدد معتبر وی وصف نه وی .خوچه هرکله هغه د عدد بیانولونه وړاندې مړه شوه.نود طلاق واقع کیدو محل فوت شو.نوکلام عبث شو.اوطلاق واقع نشو.

وَهَذِهِ تُجَانِسُ مَا قَبْلَهَا مِنْ حَيْثُ الْمَعْنَى اودا د معنی په اعتبار سره د ماقبل هم جنس دې.

تشریح:- په دې عبارت سره فرمائی .چه دا درې واړه مسائل د معنی په لحاظ سره د وړاندینومسائلودجنس څنی دی .دماقبل نه مراد د خاوند خپلې ښځې ته دا وینا ده.چه [أنت طالق ثلاثا].ددې مماثلت لنډیز دا ده.چه د طلاق په واقع کولوکې عدد معتبر وی .وصف نه وی .نودا درې واړه مسائله د وړاندینۍ مسئلې پشان دی

خودې درې واړو په حکم کې توپیر شته.ځکه چې مخکنۍ مسئله کې طلاق واقع کیږی .ځکه چې عدد دغه ښځه په داسې حالت کې بیاموندې وه.چه هغه منکوحه وه.اودلته نه واقع کیږی .ځکه چې عدد دا د مړونی په حالت کې بیا موندې ده.کوم چې د طلاق واقع کیدو محل نه دې.

**د طلاق قبل الدخول څه لورصورتونه**

وَلَوْ قَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً قَبْلَ وَاحِدَةٍ أَوْ بَعْدَهَا وَاحِدَةٌ اوکه ( غیرمدخول بها) ته نې اوونیل.،انت طالق واحدة قبل واحدة یا بعدها واحدة وَقَعَتْ وَاحِدَةٌ نو یوبه واقع وی

تشریح:- په دې عبارت کې د طلاق قبل الدخول څلورصورتونه زیربحث دی .[① أنـت طـالق واحـدة قبـل واحدة② أنت طالق واحدة بعدها واحدة③ أنت طالق واحدة قبلها واحدة④ أنت طالق واحدة بعدواحدة] په اولنودوو صورتونوکې یوطلاق واقع کیږی .اوپه آخرنودوو صورتونوکې دوې [دوه] طلاقه واقع کیږی .دا خبره په ذهن کې کینوئ.چه لفظ د[قبل] د وړاندیوالی لپاره راځی .اولفظ د [بعد] د روستووالی لپاره راځی .

وَالْأَصْلُ أَنَّهُ مَتَى ذَكَرَ شَيْئَيْنِ او قاعده ده.چه کله دوې [دوه] شیان (څیزونه ) ذکر کړې شو وَأَدْخَلَ بَيْنَهُمَا حَرْفَ الظَّرْفِ او ددې دواړو په منځ کې کلمه د ظرف داخل کړې ده إِنْ قَرَنَهَا بِهَاءِ الْكِنَايَةِ نوکه کلمه د ظرف نې په،هاء کنایه،( ضمیر) پورې متصل کړې ده ،كَانَ صِفَةً لِلْمَذْكُورِ أَوَّلًا كَقَوْلِهِ: جَاءَنِي زَيْدٌ قَبْلَهُ عَمْرٌو،،نو دغه وخت به ( دهغه) صفت وی .کوم چې په آخرکې ذکر دې.لکه دده قول،جاء نی زید قبله عمر وَإِنْ لَمْ يَقْرِنْهَا بِهَاءِ الْكِنَايَةِ اوکه ظرف نې د،هاء کنایه، سره متصل نکړو كَانَ صِفَةً لِلْمَذْكُورِ آخِرًا كَقَوْلِهِ: جَاءَنِي زَيْدٌ قَبْلَ عَمْرٍو نو مذکور ظرف به د اول صفت وی .لکه دده قول،جاء نی زید قبل عمر وَإِيقَاعُ الطَّلَاقِ فِي الْمَاضِي إِيقَاعٌ فِي الْحَالِ او طلاق په ماضی کې واقع کول فی الحال واقع کول دی لِأَنَّ الْإِسْنَادَ لَيْسَ فِي وُسْعِهِ ځکه چې ( ماضی

ارخ ته) نسبت دده په قدرت کي نه دې فَالْقَبْلِيَّةُ فِي قَوْلِهِ: أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً قَبْلَ وَاحِدَةٍ صِفَةٌ لِلْأُولَى نو قبلیت دده په قول، انت طالق واحدة قبل واحدة، کي د اولی صفت دې فَتَبِيْنُ بِالْأُولَى فَلَا تَقَعُ الثَّانِيَةُ نو په اولی سره به بائنه وی .او دوهم به نه واقع کیږی وَالْبَعْدِيَّةُ فِي قَوْلِهِ بَعْدَهَا وَاحِدَةٌ صِفَةٌ لِلْأَخِيرَةِ او بعدیت دده په قول، بعدها واحدة، کي صفت دې.د آخری فَحَصَلَتِ الْإِبَانَةُ بِالْأُولَى نو ابانت د اولی په ذریعه حاصل شو

تشریح:- دا څلورصورتونه په دوو اصولوباندې موقوف دی .کوم چې مصنف رحمه الله په کتاب کي ذکرکړی دی.

①اول دا چې ظرف یعنی لفظ د قبل اوبعد په هاء کنایه سره مقید کړې شی .نوظرف به د روستوکلام لپاره صفت وی .اوکه هاء کنایه سره مقید نه وی .نود وړاندینی کلام صفت به وی .(دلته د صفت نه معنوی صفت مراد دې.نحو صفت مراد نه دې)

ددې اصل وضاحت به په دې دوو مثالونه سره اوشی .① [جاءنی زید قبله عمرو] ②او[جاءنی زید قبل عمرو]په اولنی مثال کي قبلیت د (مابعد یعنی عمرصفت دې.مطلب دا چې عمرنه وړاندې راغلې وو.او زید روسته.اوپه دوهم مثال کي قبلیت د ماقبل یعنی زید صفت دې.یعنی زید وړاندي راغلې وو.اوعمر روسته.

دوهم اصل دا دې.چه [إیقاع في الماضی إیقاع فی الحال] وی .یعنی که ماضی زمانې ته د طلاق نسبت اوشی .اوواقع کړې شی .نوپه زمانه حال کي به واقع کیږی .په ماضی کي نه.ځکه چې ماضی ته د طلاق نسبت کول اوهغه واقع کول د انسان په وس کي نه دی .یعنی دا ناممکن ده.چه یوکس نن اووائی .[أنت طالق أمس] اوهغه طلاق په تیرشوی سهار کي واقع شی .ددې دواړو اصولونه علاوه یوه بله خبره په ذهن کي واچوئ.هغه دا چې غیرمدخول بها ښځه په یوطلاق سره بائنه کیږی .اوپه دې به عدت واجب نه وی .اونه د یوطلاق نه روسته هغه محل د طلاق پاتې کیږی .

①اوس که یوکس خپلې غیرمدخول بها ښځې ته اووئیل.چه [أنت طالق واحدة قبل واحدة] تاته دې یوطلاق وی .چه دهغې نه روسته یوبل هم وی .)نوپه دې صورت کي به لفظ د قبل د وړاندینی کلام صفت وی .اومعنی به دا وی .چه اول واحدهٔ اول او دوهم واحدهٔ وریسې دې.نوهرکله چې اولنۍ واحده واقع شو .نو غیرمدخول بها ښځه بائنه شوه.اود دوهم واحدهٔ لپاره محل پاته پاتې نشو.ددې امله دوهم واحدهٔ عبث شو.نوثابته شوه.چه یوطلاق واقع شو.

②اوکه ونې وئیل.چه [أنت طالق واحدة بعدها واحدة] تاته دې د یوطلاق نه روسته یوطلاق وی .په دې صورت کي لفظ د بعد د ماقبل صفت دې.معنی دا شوه.چه تاته دې یوطلاق وی .چه دهغې نه روسته بل طلاق وی .یعنی په اولنی واحدهٔ باندې غیرمدخول بها بائنه شوه.اوددې نه روسته د دوهم واحدهٔ لپاره د محل نه پاتې کیدو د امله هغه طلاق عبث شو.نوپه دې صورت کي هم یوطلاق واقع کیږی .

③اوکه ونې وئیل.چه [أنت طالق واحدة قبلها واحدة] نوپه دې صورت کي به لفظ د ،قبل،د ما بعد صفت وی .یعنی تاته یوطلاق دې چې د هغې نه روسته یووی .دا کلام تقاضا کوی .چه اولنې طلاق دې په ماضی کي او دوهم دې في الحال واقع شی .اوچونکه [إیقاع في الماضی إیقـاع في الحـال] وی .نودواړه طلاقونه به په زمانه حال په یوځائې واقع شی .اوغیرمدخول بها ښځې ته په یوخال دوې [دوه] طلاقه ورکولې شی .نوځکه به په دې صورت کي دوې [دوه] طلاقه واقع شی .

وَلَوْ قَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً قَبْلَهَا وَاحِدَةٌ تَقَعُ ثِنْتَانِ اوکه وې وئیل، انت طالق واحدة قبلها واحدة، نو دوې [دوه] به واقع وی لِأَنَّ الْقَبْلِيَّةَ صِفَةٌ لِلثَّانِيَةِ لِاتِّصَالِهَا بِحَرْفِ الْكِنَايَةِ ځکه چې قبلیت صفت دې.د دویم، ددې د متصل کیدلو په وجه، د حرف کنایه (ضمیر) سره فَاقْتَضَى إِيقَاعَهَا فِي الْمَاضِي وَإِيقَاعَ الْأُولَى فِي الْحَالِ نو تقاضانې اوکړله.د دوهم په ماضی کي د واقع کولو.اود رومبی فی الحال د واقع کولو غَيْرَ أَنَّ الْإِيقَاعَ فِي الْمَاضِي إِيقَاعٌ



فِي الْحَالِ أَيْضًا مګر داچه ایقاع فی الماضی ایقاع فی الحال وی فَيَقْتَرِنَانِ فَيَقَعَانِ نو( اولی او دویم) دواړه به مقترن وی .او دواړه به واقع کیږی

تشریح:- دا څلورصورتونه په دوو اصولوباندې موقوف دی .کوم چې مصنف رحمه الله په کتاب کي ذکرکړی دی.

①اول دا چې ظرف یعنی لفظ د قبل اوبعد په هاء کنایه سره مقید کړې شی .نوظرف به د روستوکلام لپاره صفت وی .اوکه هاء کنایه سره مقید نه وی .نود وړاندینی کلام صفت به وی .(دلته د صفت نه معنوی صفت مراد دې.نحو صفت مراد نه دې)

ددې اصل وضاحت به په دې دوو مثالونه سره اوشی .① [جاءنی زید قبله عمرو] ②او[جاءنی زید قبل عمرو]په اولنی مثال کي قبلیت د (مابعد یعنی عمرصفت دې.مطلب دا چې عمرنه وړاندې راغلې وو.او زید روسته.اوپه دوهم مثال کي قبلیت د ماقبل یعنی زید صفت دې.یعنی زید وړاندي راغلې وو.اوعمر روسته.

دوهم اصل دا دې.چه [إیقاع في الماضی إیقاع فی الحال] وی .یعنی که ماضی زمانې ته د طلاق نسبت اوشی .اوواقع کړې شی .نوپه زمانه حال کي به واقع کیږی .په ماضی کي نه.ځکه چې ماضی ته د طلاق نسبت کول اوهغه واقع کول د انسان په وس کي نه دی .یعنی دا ناممکن ده.چه یوکس نن اووائی .[أنت طالق أمس] اوهغه طلاق په تیرشوی سهار کي واقع شی .ددې دواړو اصولونه علاوه یوه بله خبره په ذهن کي واچوئ.هغه دا چې غیرمدخول بها ښځه په یوطلاق سره بائنه کیږی .اوپه دې به عدت واجب نه وی .اونه د یوطلاق نه روسته هغه محل د طلاق پاتې کیږی .

①اوس که یوکس خپلې غیرمدخول بها ښځې ته اووئیل.چه [أنت طالق واحدة قبل واحدة] تاته دې یوطلاق وی .چه دهغې نه روسته یوبل هم وی .)نوپه دې صورت کي به لفظ د قبل د وړاندینی کلام صفت وی .اومعنی به دا وی .چه اول واحدهٔ اول او دوهم واحدهٔ وریسې دې.نوهرکله چې اولنۍ واحده واقع شو .نو غیرمدخول بها ښځه بائنه شوه.اود دوهم واحدهٔ لپاره محل پاته پاتې نشو.ددې امله دوهم واحدهٔ عبث شو.نوثابته شوه.چه یوطلاق واقع شو.

②اوکه ونې وئیل.چه [أنت طالق واحدة بعدها واحدة] تاته دې د یوطلاق نه روسته یوطلاق وی .په دې صورت کي لفظ د بعد د ماقبل صفت دې.معنی دا شوه.چه تاته دې یوطلاق وی .چه دهغې نه روسته بل طلاق وی .یعنی په اولنی واحدهٔ باندې غیرمدخول بها بائنه شوه.اوددې نه روسته د دوهم واحدهٔ لپاره د محل نه پاتې کیدو د امله هغه طلاق عبث شو.نوپه دې صورت کي هم یوطلاق واقع کیږی .

③اوکه ونې وئیل.چه [أنت طالق واحدة قبلها واحدة] نوپه دې صورت کي به لفظ د ،قبل،د ما بعد صفت وی .یعنی تاته یوطلاق دې چې د هغې نه روسته یووی .دا کلام تقاضا کوی .چه اولنې طلاق دې په ماضی کي او دوهم دې في الحال واقع شی .اوچونکه [إیقاع في الماضی إیقـاع في الحـال] وی .نودواړه طلاقونه به په زمانه حال په یوځائې واقع شی .اوغیرمدخول بها ښځې ته په یوخال دوې [دوه] طلاقه ورکولې شی .نوځکه به په دې صورت کي دوې [دوه] طلاقه واقع شی .

وَكَذَا إِذَا قَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً بَعْدَ وَاحِدَةٍ او هم دغه ډول کله چې اووائی ،انت طالق واحدة بعد واحدة،نو دوې [دوه] به واقع کیږی لِأَنَّ الْبَعْدِيَّةَ صِفَةٌ لِلْأُولَى ځکه چې بعدیت د اولی صفت دې فَاقْتَضَى إِيقَاعَ الْوَاحِدَةِ فِي الْحَالِ نو تقاضا نې اوکړله.د واحدة اولی د فی الحال واقع کولو وَإِيقَاعَ الْأُخْرَى قَبْلَ هَذِهِ اود واحدة دوهم (تقاضا نې اوکړله) ددې نه وړاندې د واقع کولو فَتَقْتَرِنَانِ نو دواړه به مقترن وی .

تشریح:- اوکه ونې وئیل. [أنت طالق واحدة بعد واحدة]یعنی تاته دې یوطلاق وی روسته د یو نه.په دې صورت کي لفظ د ،بعد،د ماقبل لپاره صفت دې.اودا کلام تقاضا کوی .چه اولنې طلاق په زمانه حال او دوهم په زمانه ماضی کي واقع شی .اوښکاره ده چې د اولنی د واقع کیدو نه وړاندې زمانه ماضی ده.نولکه چې

دوهم طلاق په زمانه ماضی کي واقع کیږي .اوچونکه [إيقاع في الماضي إيقاع في الحال] وی .نودا دواړه طلاقه به په زمانه حال کي واقع وی .ددې امله په دې صورت کي هم په غیرمدخول بها باندې دوې [دوه] طلاقه واقع کیږي .

**په [أنت طلاق واحدة مع واحدة] باندې وقوع دطلاق**

وَلَوْقَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً مَعَ وَاحِدَةٍ أَوْ مَعَهَا وَاحِدَةٌ تَقَعُ ثِنْتَانِ (۱)اوکه وې وئیل.تاته یو طلاق دې د یو سره.یا ددې سره یو ،نو دوې [دوه] به واقع کیږي لِأَنَّ كَلِمَةَ مَعَ لِلْقِرَانِ خکه چې کلمه د مع اتصال لپاره راځی

**تشریح:-** مسئله دا ده.که یو کس اوونیل.① [أنت طالق واحدة مع واحدة] ② یا [أنت طالق واحدة معها واحدة]نودوې [دوه] طلاقه واقع کیږي .دلیل دا دې.چه کلمه د ،مع،د اقتران اواتصال لپاره ده.نوحاصل دا شو.چه دواړه طلاقه په یوځائې واقع شول.

وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رحمه الله فِي قَوْلِهِ: مَعَهَا وَاحِدَةٌ أَنَّهُ تَقَعُ وَاحِدَةٌ اود ابویوسف رحمه الله نه روایت دې.چه د خاوند قول، معها واحدة، کي به یو واقع کیږي لِأَنَّ الْكِنَايَةَ تَقْتَضِي سَبْقَ الْمُكَنَّى عَنْهُ لَا مَحَالَةَ خکه کنایه تقاضا کوی .چه په کوم سره کنایه شوې ده.هغه وړاندې وی

**حل اللغة:** ① سبق: وړاندې والې ]

**تشریح:-** دامام ابویوسف رحمه الله نه یوروایت دا دې.چه د [معها واحدة] په صورت کي به یوواقع کیږي .دلیل دا دې. چې ضمیردا تقاضا کوی .چه ددې نه وړاندې دې مرجع ذکرشوې وی .اوپه طلاق کي چې کوم واحدة دې. نوددې وجود به وقوع سره راځی .نواوس به صورت دا وی .چه اولنې واحدة به وړاندې واقع شوې وی .اود دوهم د وقوع په وخت کي به محل د طلاق فوت شوې وی .نو دوهم به عبث شی .

وَفِي الْمَدْخُولِ بِهَا تَقَعُ ثِنْتَانِ فِي الْوُجُوهِ كُلِّهَا لِقِيَامِ الْمَحَلِّيَّةِ بَعْدَ وُقُوعِ الْأُولَى او په مدخول بها کي به په ټولو صورتونوکي دوې [دوه] واقع کیږي .د ړومبی د واقع کیدو نه روسته د محل طلاق موجود کیدلو په وجه.

**تشریح:-** مصنف رحمه الله فرمائی .چه په ذکرشوو ټولوصورتونوکي به په مدخول بها باندې دوې [دوه] طلاقه واقع کیږي .خکه چې مدخول بها د یوطلاق واقع کیدونه روسته هم محل دطلاق پاتې کیږي .

**ذکر شوو صورتونوکي د مدخول بها حکم**

وَلَوْقَالَ لَهَا وکه غیرمدخول بها ته نې اوونیل إِنْ دَخَلْتِ الدَّارَ فَأَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً وَوَاحِدَةً که ته کور ته داخل شوې.نو تاته یو طلاق دې.او یو فَدَخَلَتْ وَقَعَتْ عَلَيْهَا وَاحِدَةٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله بیا داخله شوه.نو په دې به د امام صاحب رحمه الله په نیز یو واقع کیږي وَقَالَا: تَقَعُ ثِنْتَانِ (۲) او صاحبین رحمهما الله فرمائی .چه دوې [دوه] به واقع کیږي وَلَوْقَالَ لَهَا: أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً وَوَاحِدَةً إِنْ دَخَلْتِ الدَّارَ اوکه وې وئیل.په دې الفاظو سره تا ته یو طلاق دې.تاته یو دې که ته داخله شوې په کورکي فَدَخَلَتْ طَلُقَتْ ثِنْتَيْنِ بِالِاتِّفَاقِ بیا داخله شوه.نو بالاجماع به دوې [دوه] واقع کیږي

**تشریح:-** صورت د مسئلې دا دې.که ذکرشوې صورتونه د شرط پورې معلق کړې شی .اویوپه بل باندې د واو

[1] القول الراجح هو قول الطرفين رحمهما الله كذا فی فتح القدير(۳۷۲\۲) وردالمحتار(۴۶۹\۲) والهندية (۳۷۳\۱) نقلاً عن القول الراجح (۳۲۵\۱)-

[2] القول الراجح هو قول الصاحبين رحمهما الله كذا فی فتح القدير(۲۹۶\۳) وردالمحتار(۴۹۶\۲) والبناية (۱۰۲\۵) نقلاً عن القول الراجح



په ذریعه عطف کړې .نوددې دوې [دوه] صورتونه دی .① شرط به یا مقدم وی ② اویا به مؤخروی .

① مثلاً[أنت طالق واحدة وواحدة إن دخلت الدار]نې اوونیل.بیابنځه کورته داخله شوه.نوبه اتفاق سره دوې [دوه] طلاقه واقع شول.② اوکه شرط مقدم وی .اومثلاً داسې اووانی .چه [إن دخلت الدارفأنت طالق واحدة وواحدة] اوغیرمدخول بها کورته ورداخله شوه.نودامام ابوحنیفه رحمه الله په نیزیوواقع کیږي . اودصاحبینو رحمهما الله په نیزپه دې صورت کي دوې [دوه] واقع کیږي .

لَهُمَا أَنَّ حَرْفَ الْوَاوِ لِلْجَمْعِ الْمُطْلَقِ .د صاحبینو رحمهما الله دلیل دادې.چه حرف واو مطلق د جمع لپاره دې فَيَتَعَلَّقْنَ جُمْلَةً نو( دواړه طلاقونه ) جمع کیږي به.او معلق به وی كَمَا إِذَا نَصَّ عَلَى الثَّلَاثِ أَوْ أَخَّرَ الشَّرْطَ لکه کله نې چې د دوو صراحت کړې وی .یا نې شرط مؤخر کړې وی

**تشریح:-** دصاحبینو رحمهما الله دلیل دا دې.چه واود مطلق جمعې لپاره راځی .نودواړه طلاقه به معلق شی .اوپه یوځل به واقع شی .لکه څنګه چې په [إن دخلت الدارفأنت طالق ثنتين] صورت کښې دوې [دوه] واقع کیږي .خکه چې واو حرف په ذریعه باندې جمع داسې ده.لکه څنګه چې دجمعې په ذریعه ده.اولکه څنګه چې د شرط د تاخیرپه صورت کي په اتفاق سره دوې [دوه] طلاقه واقع کیږي .دغه ډول به د تقدیم په صورت کي هم دوې [دوه] واقع کیږي .

وَلَهُ أَنَّ الْجَمْعَ الْمُطْلَقَ يَحْتَمِلُ الْقِرَانَ وَالتَّرْتِيبَ،اود امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادې.چه جمع د مطلق قران او ترتیب احتمال لرې ،فَعَلَى اعْتِبَارِ الْأَوَّلِ تَقَعُ ثِنْتَانِ نود اول اعتبار کاوه سره به دوې [دوه] واقع کیږي وَعَلَى اعْتِبَارِ الثَّانِي لَا تَقَعُ إِلَّا وَاحِدَةٌ اود دوهم اعتبار کاوه سره به صرف یو واقع کیږي كَمَا إِذَا نَجَّزَ بِهَذِهِ اللَّفْظَةِ لکه کله چې ددې لفظ سره فی الحال ورکړي فَلَا يَقَعُ الزَّائِدُ عَلَى الْوَاحِدَةِ بِالشَّكِّ نود شك په وجه به د یو نه زیات نه واقع کیږي

**تشریح:-** دامام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دا دې.چه مطلقاً جمع د اتصال اوترتیب احتمال لرې .نوکه داتصال د معنی خیال اوساتلې شی .نوپکار ده چې دوې [دوه] واقع شی .اوکه د ترتیب دمعنی خیال اوساتلې شی .نوپکار ده چې یوواقع شی .لکه څنګه چې په [أنت طالق واحدة وواحدة] طلاق منجزکي صرف یوواقع کیږي .نومعلومه شوه.چه دیونه د زیاتی طلاق په واقع کیدو کي شك دې.اودشك په وجه طلاق نه واقع کیږي .نوخکه به د یونه زیات نه واقع کیږي .

بِخِلَافِ مَا إِذَا أَخَّرَ الشَّرْطَ په خلاف ددې صورت کله چې شرط مؤخر کړي لِأَنَّهُ مُغَيِّرٌ صَدْرَ الْكَلَامِ خکه چې شرط اول د کلام بدلونکې دې فَيَتَوَقَّفُ الْأَوَّلُ عَلَيْهِ نو اول کلام به په شرط باندې موقوف وی فَيَقَعْنَ جُمْلَةً نو واړه به په یوځل واقع کیږي .وَلَا مُغَيِّرَ فِيمَا إِذَا قَدَّمَ الشَّرْطَ او په دې صورت کي هیڅ مغیر نشته.کله چې نې شرط مقدم کړې وی فَلَمْ يَتَوَقَّفْ نو موقوف پاتې نشو

**تشریح:-** په دې عبارت کي د صاحبینو د قیاس نه ځواب ورکوی چې دصاحبینو رحمهما الله دتقدیم شرط صورت په تاخیرشرط باندې قیاس کړې دې.خومونږوایو.چه دا قیاس صحیح نه دې.خکه چې د شرط دتاخیرپه صورت کي شرط د کلام اول بدلوی .نواول دکلام به په شرط باندې موقوف وی .چه شرط څنګه موجود شی .نودوې [دوه] طلاقونه به په یوځل واقع کیږي .اودتقدیم په صورت کي د کلام د اول بدلونکې څه څیزنشته.نواول د کلام په آخردکلام موقوف نشو.نوخکه به دواړه طلاقونه په ترتیب سره واقع کیږي .اوبنځه چونکه غیرمدخول بها ده.نواولنی طلاق سره هغه بائنه شوه.او دوهم به نه واقع کیږي .

دغه ډول په [أنت طالق ثنتين] باندې قیاس کول هم صحیح نه دی .ځکه چې د [ثنتين] د تصریح په وخت کې د ترتیب احتمال پاتې نشو.او د واو حرف سره د ترتیب احتمال شته.نوچه دا توپیر وی .ددې باوجود قیاس مع الفارق شو.

وَلَوْ عَطَفَ بِحَرْفِ الْفَاءِ او که په حرف فاء سره ئې عطف اوکړو فَهُوَ عَلَى هَذَا الْخِلَافِ فِيمَا ذَكَرَ الْكَرْخِيُّ رحمه الله نو هغه هم په دې اختلاف دې.د امام کرخی رحمه الله د ذکر مطابق، وَذَكَرَ الْفَقِيهُ أَبُو اللَّيْثِ أَنَّهُ يَقَعُ وَاحِدَةٌ بِالِاتِّفَاقِ او فقیه ابواللیث رحمه الله ذکرکړی دی .چه بالاتفاق به یو واقع کیږی لِأَنَّ الْفَاءَ لِلتَّعْقِيبِ وَهُوَ الْأَصَحُّ ځکه چې فاء د تعقیب لپاره ده.او هم دا اصح دي.

**حل اللغة:** ① **التعقیب:** روستووالي ]

**تشریح:-** که د فاء په حرف ئې عطف اوکړلو.مثلاً [أنت طالق واحدة فواحدة] ① نو دامام کرخی رحمه الله دبیان مطابق دا مسئله هم مختلف فیه ده.یعنی دامام ابوحنیفه رحمه الله په نیز یو او د صاحبینو رحمهما الله په نیز دوې [دوه] واقع کیږی .لکه چې امام کرخی رحمه الله عطف په واؤ او عطف په فاء سره دواړه برابر کړی دی .حالانکه دا صحیح نه ده. ② او فقیه ابواللیث رحمه الله فرمائی .چه د عطف بالفاء په صورت کې په اتفاق سره یو واقع کیږی .او هم دا صحیح قول دې.ځکه چې فاء د تعقیب یعنی په ترتیب سره د حکم واقع کیدو باندې دلالت کوی .

## دکنایه طلاق بیان

وَأَمَّا الضَّرْبُ الثَّانِي وَهُوَ الْكِنَايَاتُ لَا يَقَعُ بِهَا الطَّلَاقُ إِلَّا بِالنِّيَّةِ أَوْ بِدَلَالَةِ الْحَالِ او بهرحال ډول ثانی هغه کنایات دی ددې په ذریعه طلاق نه واقع کیږی .خو په نیت سره.یا دلالتِ حال سره لِأَنَّهَا غَيْرُ مَوْضُوعَةٍ لِلطَّلَاقِ بَلْ تَحْتَمِلُهُ وَغَيْرَهُ ځکه چې کنایات د طلاق لپاره موضوع نه دی .بلکه د طلاق او د غیر طلاق دواړو احتمال لری فَلَا بُدَّ مِنَ التَّعْيِينِ أَوْ دَلَالَتِهِ نو تعیین یا دلالتِ حال ضروری دي.

**تشریح:-** مصنف رحمه الله چې کله د طلاق د اولنی ډول یعنی صریحی طلاق نه فارغ شو.نو اوس په دوهم ډول یعنی کنایه طلاق باندې پیل کوی .کنایه هغه دي.چه دهغې مراد پټ او مخفی وی .او دکنایه حکم دا دي.چه په دې به عمل واجب نه وی .البته دا چې نیتِ موجود وی .یا د نیت قائم مقام یعنی دلالت حال وی .

دلیل دا دي.چه دکنایه الفاظ صرف د طلاق لپاره نه دی مقرر.بلکه په طلاق او غیر طلاق دواړو احتمال لری .نو په نیت سره یوه معنی متعین کول ضروری شو.یا کم ازکم د معنی د تعین لپاره دلالت ضروری دي.

## دکنایاتو قسمونه

قَالَ وَهِيَ عَلَى ضَرْبَيْنِ او کنایات په دوې [دوه] قسمه دی مِنْهَا ثَلَاثَةُ أَلْفَاظٍ يَقَعُ بِهَا الطَّلَاقُ الرَّجْعِيُّ په دې کې درې الفاظ داسې دی .چه په دې سره طلاق رجعی واقع کیږی وَلَا يَقَعُ بِهَا إِلَّا وَاحِدَةٌ او په دې کې به صرف یو واقع کیږی وَهِيَ قَوْلُهُ: اعْتَدِّي وَاسْتَبْرِئِي رَحِمَكِ وَأَنْتِ وَاحِدَةٌ او هغه دده قول،اعتدی و استبرئی رحمك، او انت واحدة، دي

**تشریح:-** فرمائی .چه د کنایاتو دوې [دوه] قسمونه دی .① یو هغه چې په هغې باندې یو طلاق رجعی واقع کیږی .② او بل هغه چې په هغې باندې یو طلاق بائن واقع کیږی .

أَمَّا الْأُولَى فَلِأَنَّهَا تَحْتَمِلُ الِاعْتِدَادَ عَنِ النِّكَاحِ وَتَحْتَمِلُ اعْتِدَادَ نِعَمِ اللَّهِ تَعَالَى بهرحال ( کلمه ) اولی ځکه چې دا احتمال لری .په نکاح سره د شمارلو.او د الله د نعمتونو د شمارلو فَإِنْ نَوَى الْأَوَّلَ نو که د اول نیت ئې اوکړو تَعَيَّنَ بِنِيَّتِهِ نو دده په نیت سره ( دا معنی ) متعین شوه فَيَقْتَضِي طَلَاقًا سَابِقًا وَالطَّلَاقُ يُعْقِبُ الرَّجْعَةَ نو تقاضا به کوی .د تیرشوی طلاق.او د طلاق نه روسته رجعت وی



**تشریح:-** داولنی ډول درې الفاظ دی .[① إعتدی ② إستبرئی رحمك ③ أنت واحدة] په دې درې واړه الفاظو کې هر یو د دوو معانیو احتمال لری .نو په نیت یا دلالت سره د یوې معنی تعین کیدای شی . لومړنی کلمه [إعتدی] کې دوې [دوه] احتماله دی .هغه داسې چې یوه معنی ئې ده.ته شمارکړه ورځې د عدت خپلې.او دویمه معنی دا ده.چه ته دالله جل جلاله نعمتونه شمارکړه.نو که خاوند د لومړنی معنی نیت کړې وی .نو دده په نیت سره به لومړنی معنی متعین شی .او دا معنی د طلاق د وړاندیوالی تقاضا کوی .ځکه چې د عدت تیرولو حکم دطلاق واقع کیدو نه وړاندې نه کیږی .نو دا به منل ضروری شی .چه طلاق وړاندې واقع شوې دي.

وَأَمَّا الثَّانِيَةُ فَلِأَنَّهَا تُسْتَعْمَلُ بِمَعْنَى الِاعْتِدَادِ او بهرحال دویمه ( کلمه) ځکه چې هغه مستعمل ده.د عدت تیریدلو په معنی کې لِأَنَّهُ تَصْرِيحٌ بِمَا هُوَ الْمَقْصُودُ مِنْهُ ځکه چې دا ( کلمه ثانیه ) د هغه شی صراحت دي.کوم چې په عدت سره مقصود دي فَكَانَ بِمَنْزِلَتِهِ نو په منزله د اعتداد به وی وَتَحْتَمِلُ الِاسْتِبْرَاءَ لِيُطَلِّقَهَا او احتمال لری .د استبراء،چه دې نه طلاق ورکړې شی

**حل اللغة:** ① **اعتداد:** تیارې کول ② **تصریح:** صراحت کول ښکاره کول ③ **الاستبراء:** بری کول ]

**تشریح:-** اودویمه کلمه [إستبرئ رحمك] دا هم د دوو معانیو احتمال لری .یوه معنی دا چې عدت تیرکړه.او د عدت تیرولو نه مقصود دا دي.چه رحم پاك کړه.نولکه چې د عدت مقصود ئې ښکاره ذکرکړلو .نو [إستبرئ رحمك] د [إعتدی] په درجه کې شو.اودویمه معنی دا ده.چه دحیض نه خپل رحم پاك کړه.چه په سنت طریقه درنه طلاق درکړې شم.په دې صورت کې هم که د لومړنی معنی نیت اوکړی .نو لومړنی معنی به متعین شی .او دا معنی دا تقاضا کوی .چه طلاق وړآندې واقع شوې دي.

وَأَمَّا الثَّالِثَةُ فَلِأَنَّهَا تَحْتَمِلُ أَنْ تَكُونَ نَعْتًا لِمَصْدَرٍ مَحْذُوفٍ او بهرحال ( دریمه ) کلمه،نو هغه احتمال لری .ددې چې د مصدر مخذوف صفت وی مَعْنَاهُ تَطْلِيقَةٌ وَاحِدَةٌ ددې معنی ده،تطلیقة واحدة، فَإِذَا نَوَاهُ نو کله ئې چې ددې نیت اوکړو جُعِلَ كَأَنَّهُ قَالَهُ نو اوګرځولې شو.لکه څنګه چې ده وئیلی وو وَالطَّلَاقُ يُعْقِبُ الرَّجْعَةَ اود طلاق نه روسته رجعت وی وَيَحْتَمِلُ غَيْرَهُ وَهُوَ أَنْ تَكُونَ وَاحِدَةً عِنْدَهُ أَوْ عِنْدَ قَوْمِهِ او ددې د غیر احتمال هم لری .هغه داچه ښځه یواځې وی .دده په نیز یا دده د قوم په نیز وَلَمَّا احْتَمَلَتْ هَذِهِ الْأَلْفَاظُ الطَّلَاقَ وَغَيْرَهُ او هرکله چې دا الفاظ د طلاق او د غیر طلاق احتمال لری تَحْتَاجُ فِيهِ إِلَى النِّيَّةِ وَلَا تَقَعُ إِلَّا وَاحِدَةٌ نود ( طلاق معنی مراد اخستلو کې به د) نیت محتاج وی .او صرف یو به واقع کیږی لِأَنَّ قَوْلَهُ: أَنْتِ طَالِقٌ فِيهَا مُقْتَضًى أَوْ مُضْمَرٌ ځکه چې دده قول،انت طالق، په دې الفاظوکې مقتضی ده.یامضمر دې وَلَوْ كَانَ مُظْهَرًا او که ( دده قول انت طالق) ښکاره وې لَا تَقَعُ بِهَا إِلَّا وَاحِدَةٌ نو په دې سره به صرف یو واقع کیدو فَإِذَا كَانَ مُضْمَرًا أَوْلَى نو کله چې مقدر دې.نو په درجه اولی به ( یو واقع کیږی ).

**تشریح:-** اوپاتې شوه دریمه کلمه د [أنت واحدة] نوپه دې کې هم د دوو معانیو احتمال دې.یوه دا چې واحدة د محذوف مصدر صفت اوګرځولې شی .یعنی [تطلیقة واحدة] اودویمه معنی دا ده.چه خاوند ددې تعریف کوی .چه ته زما په نیزپه زمانه کې بیمثاله ئې.یا ته زما په قوم کې بیمثاله ئې.یعنی ستاپشان بله ښځه نشته.نوپه دې صورت کې ئې هم که د لومړنی معنی نیت کړې وی .نولکه چې ده [أنت تطلیقة واحدة] اووئیل. اوپه دې کلام سره به طلاق رجعی واقع کیږی .نوپه [أنت واحدة] سره به هم یوطلاق رجعی واقع کیږی .

التنبیه دا چې هرکله دا درې واړه الفاظ د طلاق اوغیرطلاق دواړواحتمال لری .نودطلاق معنی اخستلو لپاره به نیت ضروری وی .اوپه دې الفاظوسره به یوطلاق رجعی واقع کیږی .دلیل دا دې.چه په اولنو دوو لفظو[إعتدی او إستبرئ رحمك] کې [أنت طالق] اقتضاءً ثابتیږی .اوپه دریمه کلمه [أنـت واحـدة] کې طلاق

مقدردي.اودده قول [أنت طالق واحدة يا تطليقة] کي ښکاره وو.نويو طلاق رجعی به واقع کيدل.نوهرکله چې
لفظ د طلاق مقدر دي.نوبيا خوبه خامخا واقع کيږی.

وَفِي قَوْلِهِ وَاحِدَةٌ وَإِنْ صَارَ الْمَصْدَرُ مَذْكُورًا لَكِنَّ التَّنْصِيصَ عَلَى الْوَاحِدَةِ يُنَافِي نِيَّةَ الثَّلَاثِ، او دده په قول واحدة کي اګرچه مصدر ذکر دي.خود واحدة تصريح د دريو د نيت منافی دي

تشریح:- دا عبارت دیواشکال ځواب دی.اشکال دا دی.چه [أنت واحدة] کي مصدرطلاق ذکردي.نوپکاره ده چې د دري طلاقو نيت په کي صحيح وو.(ځکه چې مصدرپه تثنيه اوجمع هم صادقيږی)
ځواب دا دي.چه د واحدة تصريح د دري د نيت کولوسره منافی ده.نوځکه د واحدة سره د دري نيت کول صحيح نه دی.

وَلَا مُعْتَبَرَ بِإِعْرَابِ الْوَاحِدَةِ عِنْدَ عَامَّةِ الْمَشَايِخِ هُوَ الصَّحِيحُ اود عامو مشائخو ﷺ په نيز د واحدة د اعراب هيڅ اعتبار نشته.او هم دا صحيح ده لِأَنَّ الْعَوَامَّ لَا يُمَيِّزُونَ بَيْنَ وُجُوهِ الْإِعْرَابِ سځکه چې عوام د اعراب د وجوه په منځ کي توپير نشی کولي.

تشریح:- صاحب دهدايه رحمه الله فرمائی .چه په [أنـت واحـدة] کي د واحدة داعراب اعتبارنه دي کړي شوي که واحدة منصوب اووئيلی شی يا مرفوع يا ساکن په دري واړه صورتونوکي طلاق واقع کيږی. ① دعامو مشائخو ﷺ هم دا رائي ده.اوهم دا صحيح ده. ② اود بعضي مشائخو ﷺ دا رائي ده.که واحدة منصوب وی .نوطلاق به واقع کيږی .اګرچه د طلاق نيت ئي نه وی کړي.اوکه مرفوع وی .نوطلاق به نه واقع کيږی.اګرچه د طلاق نيت ئي کړي وی .اوکه ساکن اولوستي شی .نود نيت محتاج به وی .خواولنی قول صحيح دي.ځکه چې عوام د اعراباتوپه مينځ کي په تميزکولوباندي قادر نه دی .والله اعلم بالصواب

## دکنايه د الفاظوقسمونه

قَالَ وَبَقِيَّةُ الْكِنَايَاتِ إِذَا نَوَى بِهَا الطَّلَاقَ او پاته کنايات کله چې په دی سره د طلاق نيت اوکړی. كَانَتْ وَاحِدَةً بَائِنَةً نو يو بائن به وی وَإِنْ نَوَى ثَلَاثًا اوکه د دريو نيت ئي اوکړو كَانَتْ ثَلَاثًا نو دري به وی وَإِنْ نَوَى ثِنْتَيْنِ كَانَتْ وَاحِدَةً اوکه د دوي [دوه] نيت ئي اوکړو.نو يو بائن به وی

تشریح:- دلته مصنف رحمه الله دکناياتود دوهم ډول بيان کوی .يعنی د ذکرشوو دري الفاظونه علاوه چې پاته کوم الفاظ دی .په هغي باندي يوطلاق بائن واقع کيږی .که د يونيت ئي کړي وی .اودوي [دوه] که د دوو اودري که دريونيت ئي کړي وی .

وَهَذَا مِثْلُ قَوْلِهِ: أَنْتِ بَائِنٌ وَبَتَّةٌ وَبَتْلَةٌ وَحَرَامٌ وَحَبْلُكِ عَلَى غَارِبِكِ وَالْحَقِي بِأَهْلِكِ وَخَلِيَّةٌ وَبَرِيَّةٌ وَوَهَبْتُكِ لِأَهْلِكِ وَسَرَّحْتُكِ اودا مثلاً دده قول، انت بائن، وبتة، وبتلة ....الخ، ته بائنه ئي.ته قطع شوي ئي.ته حرام ئي.او ستا رسئ ستا په سټ کي ده.اوته خپل کور والا خلګو سره ملاؤ شه.او ته شليدلي ئي.او ته بری ئي.او ماته ستا کور والا ته هبه کړي.او ما ته پريخودلي وَفَارَقْتُكِ وَأَمْرُكِ بِيَدِكِ وَاخْتَارِي وَأَنْتِ حُرَّةٌ وَتَقَنَّعِي وَتَخَمَّرِي وَاسْتَتِرِي وَاغْرُبِي وَاخْرُجِي وَاذْهَبِي وَقُومِي وَابْتَغِي الْأَزْوَاجَ او ما ستا سره مفارقت اوکړو.او ستا معامله ستا په لاس کي ده.او ته اختيار کړه.او ته ازاده ئي.ته په مخ واچوه.ته لوپټه واچوه.ته پرده اوکړه.ته لري شه.ته اوځه،ته لاړه شه.ته اودريږه.او ته خپله جوړه لټون کوه لِأَنَّهَا تَحْتَمِلُ الطَّلَاقَ وَغَيْرَهُ ځکه چې دا الفاظ د طلاق او غير طلاق احتمال لری .فَلَا بُدَّ مِنَ النِّيَّةِ نو نيت ضروری دي.

حل اللغة* ① بتة: جلا شوي ② خلية: خالی ئي ③ تقنعی:ته لوپټه په مخ واچوه ④ تخمری: پروني په مخ واچوه
تشریح:- په عبارت کي چې د کنايه کوم الفاظ ذکرشوی دی .په ټولوکي د طلاق اوغيرطلاق دواړواحتمال شته.نود يومتعين کاوه لپاره نيت ضروری دي.اودهريولفظ نه دوي [دوه] معانی راويستل څه ګران نه دی



مثلاً آخری کلمه((وابتغی الأزواج)) ددي يوه معنی دا ده.چه ته همسيال ښځي اولټوه.چه زړه دي خوشحاله شی .دويمه معنی دا ده.چه ته خاوندان اولټوه.ځکه چې ته زما نه بائنه شوي ئي.علی هذا القياس

## په طلاق کي د حالاتو او کناياتو بيان

قَالَ إِلَّا أَنْ يَكُونَ فِي حَالِ مُذَاكَرَةِ الطَّلَاقِ فرمائی .مګر داچه مذاکره د طلاق په حالت کي وی فَيَقَعُ بِهَا الطَّلَاقُ فِي الْقَضَاءِ نو په دي الفاظو سره به طلاق واقع کيږی قضاءً وَلَا يَقَعُ فِيمَا بَيْنَهُ وَبَيْنَ اللَّهِ تَعَالَى إِلَّا أَنْ يَنْوِيَهُ او فيما بينه وبين الله به نه واقع کيږی .خودا چې د طلاق نيت اوکړی .( نو بيا به واقع کيږی )

تشریح:- په وړاندينئ مسئله کي تيرشو.چه د کنايه په الفاظوکي د طلاق د نيت نه بغيرطلاق نه واقع کيږی .البته دا چې د طلاق د خبروکولوپه مهال کي وی .دقدوری د عبارت لنډيز دا ده.چه د کنايه په الفاظود نيت نه بغيرطلاق نه واقع کيږی .البته که ښځه او خاوند دواړه د طلاق خبري کوی .اوهم په دغه وخت کي خاوند د کنايه په څه لفظ سره مخاطبه کړله.نوپه دي صورت کي د طلاق نيت ضروری نه دي.بلکه د نيت نه بغيرقضاءً طلاق واقع کيږی .اګرچه ديانةً د الله اوبنده په مينځ کي طلاق نه واقع کيږی .

قَالَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سَوَّى بَيْنَ هَذِهِ الْأَلْفَاظِ امصنف رحمه الله فرمائی .چه ( ابو الحسين قدوری رحمه الله) دا الفاظ برابر کړل وَقَالَ وَلَا يُصَدَّقُ فِي الْقَضَاءِ إِذَا كَانَ فِي حَالِ مُذَاكَرَةِ الطَّلَاقِ قَالُوا وَهَذَا فِيمَا لَا يَصْلُحُ رَدًّا حالانکه ( داحکم کوم چې قدوری بيان کړي دي) په هغه الفاظوکي دي.کوم چې د رد کاوه صلاحت نه لری

تشریح:- صاحب دهدايه رحمه الله فرمائی .چه امام قدوری رحمه الله د کنايه په الفاظوکي واړه د نيت په اړتيا کي برابر کړل. حالانکه دا حکم مطلق نه دي.بلکه صرف په هغه الفاظوکي دي.چه هغه د رد صلاحيت نه لری .

وَالْجُمْلَةُ فِي ذَلِكَ أَنَّ الْأَحْوَالَ ثَلَاثَةٌ: په دي اړه کي حاصل دادي.چه حالتونه دري دی حَالَةٌ مُطْلَقَةٌ وَهِيَ حَالَةُ الرِّضَا مطلقه،اودا د رضامندئ حالت دي وَحَالَةُ مُذَاكَرَةِ الطَّلَاقِ طلاق د ذکر و اذکار حالت وَحَالَةُ الْغَضَبِ د غصي حالت.

تشریح:- ددي دتفصيل دا دي.چه حالات دري دی .① حالت مطلقه يعنی د رضا حالت② حالت مذاکره طلاق مثلاً ښځه د خاوند نه د طلاق سوال کوی .يا تري بل څوك د طلاق سوال کوی .③ حالت د غصي يعنی د دواړوطرفونونه د غصي خبري کيږی .

وَالْكِنَايَاتُ ثَلَاثَةُ أَقْسَامٍ: او کنايات هم دري قسمه دی مَا يَصْلُحُ جَوَابًا وَرَدًّا. هغه کوم چې د ځواب او رد دواړو صلاحيت لری وَمَا يَصْلُحُ جَوَابًا لَا رَدًّا. کوم چې د ځواب صلاحيت لری .د رد( صلاحيت) نه لری وَمَا يَصْلُحُ جَوَابًا وَسَبًّا وَشَتِيمَةً کوم چې د ځواب صلاحيت لری او د کنځلو( او بد رد وئيلو)..

حل اللغة* ① سب: کنځل ② شتيمة: بدرد وئيل،بداخلاقی کول.

تشریح:-دغه ډول د کناياتوهم دري قسمونه دی .① دکنايه هغه الفاظ چې هغه رد اوځواب دواړه کيداي شی .يعنی د ښځي دارخه چې دطلاق کوم سوال شوي وی .دهغي ځواب هم کيداي شی .اورد هم.② دوهم هغه الفاظ چې هغه ځواب خو کيداي شی .اورد نشی کيدي.③ دريم هغه الفاظ کوم چې رد اوځواب هم کيداي شی .او کنزلي ( بد رد وئيل) هم.

فَفِي حَالَةِ الرِّضَا لَا يَكُونُ شَيْءٌ مِنْهَا طَلَاقًا إِلَّا بِالنِّيَّةِ نود رضامندئ په حالت کي به په دي الفاظو سره هيڅ طلاق نه کيږی .خو په نيت سره فَالْقَوْلُ قَوْلُهُ فِي إِنْكَارِ النِّيَّةِ لِمَا قُلْنَا اود نيت په انکار کولوکي به د خاوند قول ( معتبر) وی .د هغه دليل په وجه کوم چې موږ بيان کړو وَفِي حَالَةِ مُذَاكَرَةِ الطَّلَاقِ لَا يُصَدَّقُ فِيمَا يَصْلُحُ جَوَابًا اود طلاق د مذاکره په وخت به قضاءً تصديق نشی کولي.په هغه الفاظوکي کوم چې ځواب کيداي شی وَلَا يَصْلُحُ رَدًّا فِي

الْقَضَاءِ او رد كيداې نشي مِثْلَ قَوْلِهِ خَلِيَّةٌ بَرِيَّةٌ بَائِنٌ بَتَّةٌ حَرَامٌ اعْتَدِّي أَمْرُكِ بِيَدِكِ اخْتَارِي مثلاً دده قول، خلية، برية، بائن، بتة، حرام، اعتدى، امرك بيدك، اختارى لِأَنَّ الظَّاهِرَ أَنَّ مُرَادَهُ الطَّلَاقُ عِنْدَ سُؤَالِ الطَّلَاقِ خكه ښكاره هم داده.چه دده مراد طلاق دي.د طلاق د سوال په وخت

تشريح:- ددې تفصيل نه روسته ددې احكاموته متوجه شي؛فرمائى ①چه په حالت د رضا كي په دې الفاظوكي هيڅ يولفظ د نيت نه بغيرطلاق نه واقع كيږي .اوكه خاوندد طلاق نه نيت نه انكاركوى .نودده خبره به معتبره وى .خكه چې دا واړه الفاظ د طلاق اوغيرطلاق دواړو احتمال لرى .نوديوې معنى د متعين كاوه لپاره نيت ضرورى دي.

②په حالت د مذاكرة د طلاق كي د خاوند دا قول چې [لم انـو الطلاق] ماد طلاق نيت نه ووكړې.نوپه دې الفاظوكي چې كوم خواب كيداې شي .اورد كيداې نشي .په هغې كي به ئې قضاء تصديق نشى كولې.اودا اته الفاظ دى .① خليه② برية③ بائن④ بتة ⑤ حرام ⑥ إعتدى⑦ أمرك بيدك⑧ إختارى.

دليل دا دې.چه كله ښځې د طلاق سوال اوكړلو.او خاوند ورته په دې اته الفاظوكي يواوونيل.نوظاهره هم دا ده.چه ددې نه مراد هم طلاق دي.اوحاكم په ظاهرباندې دعمل كولوپابند دې په باطن نه.

وَيُصَدَّقُ فِيمَا يَصْلُحُ جَوَابًا وَرَدًّا او تصديق به كولې شى .په هغه الفاظوكي كوم چې د خواب اود دواړو صلاحيت لرى مِثْلَ قَوْلِهِ: اذْهَبِي أُخْرُجِي قُومِي تَقَنَّعِي تَخَمَّرِي وَمَا يَجْرِي هَذَا الْمَجْرَى مثلاً دده قول، اذهبى ، اخرجى ، قومى ، تقنعى ،تخمرى ،او كوم چې ددې قائم مقام دى لِأَنَّهُ يَحْتَمِلُ الرَّدَّ خكه چې د رد كاوه احتمال لرى وَهُوَ الْأَدْنَى فَحُمِلَ عَلَيْهِ او رد ادنى دې.نو په دې به محمول كولې ش

تشريح:- البته هغه الفاظ كوم چې رد اوخواب دواړه كيداې شي .نوپه هغې كښې بـه د خاوند د قول [لم أنو الطلاق] تصديق كولې شى .اوهغه اووۀ الفاظ دى .① إذهبى② أخرجى③ قومى④ تقنعى ⑤ تخمرى ⑥ إغربى ⑦ إستبرئ .دليل دا دې. چې دا الفاظ د طلاق نه سوا د نورومعانيواحتمال هم لرى .

وَفِى حَالَةِ الْغَضَبِ يُصَدَّقُ فِى جَمِيعِ ذَلِكَ لِاحْتِمَالِ الرَّدِّ وَالسَّبِّ،او دغصې په حالت كي به په دې ټولو كناياتوكي تصديق كولې شى . د رد كاوه يا د ښكنځلو (كنځلو) احتمال درلودى په وجه إِلَّا فِيمَا يَصْلُحُ لِلطَّلَاقِ وَلَا يَصْلُحُ لِلرَّدِّ وَالشَّتْمِ خو په هغه الفاظوكي كوم چې د رد كاوه او ښكنځلو (كنځلو) صلاحيت نه لرى كَقَوْلِهِ: اعْتَدِّي وَاخْتَارِي وَأَمْرُكِ بِيَدِكِ فَإِنَّهُ لَا يُصَدَّقُ فِيهَا او په طلاق كي به تصديق نشى كولې لِأَنَّ الْغَضَبَ يَدُلُّ عَلَى إِرَادَةِ الطَّلَاقِ خكه چې غصه په طلاق مراد اخستلوباندې دلالت كوى .

تشريح:- په حالت دغصه كي د كنايه په ټولو الفاظوكي به دده د قول چې [لم أنو الطلاق] تصديق كولې شى .خكه چې په دې الفاظوكي د رد احتمال دې يا د كنځلو.خوكوم الفاظ چې صرف طلاق كيداې شى .رد اوكنځل نشى كيدې.نوپه هغې كي به د خاوند د قول چې [لم أنو الطلاق] تصديق نشى كولې.اوهغه درې الفاظ دى .[① إعتدى② إختارى③ أمرك بيدك] دليل دا دې.چه غصه په طلاق مراد اخستلوباندې دلالت كوى .نود ده تصديق به په دې كي نشى كولې.چه زما نيت د طلاق نه وو.

وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ فِى قَوْلِهِ: لَا مِلْكَ لِي عَلَيْكِ اود ابويوسف رحمه الله فرمائى .دده په قول كي چه،زما په تا باندې هيڅ ملك نشته وَلَا سَبِيلَ لِي عَلَيْكِ وَخَلَّيْتُ سَبِيلَكِ وَفَارَقْتُكِ،او نه زما په تا باندې څه لاره شته،او ما ستا لاره پريخودله،او ته ما جلا كړې أَنَّهُ يُصَدَّقُ فِى حَالَةِ الْغَضَبِ د غصې په حالت كي به تصديق كولاى شى لِمَا فِيهَا مِنْ احْتِمَالِ مَعْنَى السَّبِّ خكه چې په دې صورتونوكي د ښكنځلو د معنى احتمال لرى .



تشريح:-دامام ابويوسف رحمه الله نه په حالت د غصه كي يوروايت دې.كه خاوند ښځې ته اوونيل.چه [لاملك لى عليك يا لاسبيل لى عليك يا خليت سبيلك يا فارقتك] اودا ئې اوونيل.چه زما د طلاق نيت نه وو.نودده تصديق به كولې شى .خكه چې په دې الفاظوكي د كنځلود معنى احتمال هم موجود دي.

دكنځلود معنى احتمال په كي په دې لحاظ سره محتمل دي.چه [لاملك لى عليك] دا معنى بيان كړې شى چه زه ته ددې قابله نه ئې.چه زه ملكيت تاته منسوب كړم.② اود [لاسبيل لى عليك] معنى دا بيانولې شى چه ستاد بداخلاقئ او ډول ډول (قسم قسم ) ضررونو د امله زما په تاباندې څه وس نه رسى .③ اود [خليت سبيلك ]معنى چې دا بيان شى .چه زه ما ستا لاره پريخودلـه.ستا د ګندګئ (پوهارئ) د وجې.④ اود [فارقتك] معنى دا بيانولې شى .چه ماته جلا كړې د خپلې بسترې نه،يا د ستا د ګنده ذهن اوپوهارئ د وجې.

## دكنايه په الفاظوسره د طلاق واقع كيدونوعيت

لِعَدَمِ وُقُوعِ الْبَائِنِ بِمَا سِوَى الثَّلَاثَةِ الْأُوَلِ مَذْهَبُنَا بيا د اولنى دريو الفاظو نه علاوه سره د بائن واقع كيدل،زمونږ مذهب دې

تشريح:- صاحب دهدايه رحمه الله فرمائى .چه اولنى درې الفاظ [إعتدى،إستبرئ رحمك اوأنت واحدة] باندې په اتفاق سره طلاق رجعى واقع كيږى .خوددې نه سوا په نورو الفاظوسره طلاق بائن واقع كيږى . دازمونږ : احنافو رحمهم الله مسلك دې

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللَّهُ :. يَقَعُ بِهَا رَجْعِيًّا او امام شافعى رحمه الله فرمائى .چه په دې الفاظو سره رجعى واقع كيږى لِأَنَّ الْوَاقِعَ بِهَا طَلَاقٌ، خكه چې په دې الفاظو سره واقع كيدونكې طلاق دې لِأَنَّهَا كِنَايَاتٌ عَنِ الطَّلَاقِ خكه دا الفاظ د طلاق نه كنايه دى وَلِهَذَا تُشْتَرَطُ النِّيَّةُ او هم په دې وجه د نيت شرط لګولې شوې دې وَيَنْتَقِصُ بِهِ الْعَدَدُ او په دې الفاظو سره ( د طلاق) عدد هم كميږى .وَالطَّلَاقُ مُعَقِّبٌ لِلرَّجْعَةِ كَالصَّرِيحِ اود طلاق نه روسته رجعت وى لكه څنګه چې په صريح الطلاق كي.

حل اللغة* ① معقب: روستو راوستونكې دې ② الصريح: ښكاره ③ ينتقص: كميږى ]

تشريح اوامام شافعى رحمه الله فرمائى .چه د كنايه په دې الفاظوسره هم طلاق رجعى واقع كيږى .دليل دا دې.دكنايه په الفاظوسره واقع كيدونكې څيزهم طلاق دې.خكه چې دا الفاظ د طلاق نه كنايه ده.اوچه دطلاق نه كنايه وى .هغه طلاق وى .نوچه په دې الفاظوسره څه واقع كيږى .هغه به هم طلاق وى . اوچونكه دا الفاظ د طلاق نه كنايه ده.نوخكه د طلاق نيت ضرورى دې.اود كنايه په الفاظوسره چې كوم طلاق وركړې شى .په هغې باندې د طلاق عدد كم شى .يعنى د دريوپه ځائې د دوومالك پاتې شى .لنډيز دا چې دكنايه په دې الفاظوبه طلاق واقع كيږى .اودطلاق نه روسته رجعت وى .لكه څنګه چې په صريحى طلاق كي رجعت وى .نوثابته شوه چې د كنايه په الفاظوسره هم طلاق رجعى واقع كيږى بائن نه واقع كيږى .

وَلَنَا أَنَّ تَصَرُّفَ الْإِبَانَةِ صَدَرَ مِنْ أَهْلِهِ مُضَافًا إِلَى مَحَلِّهِ عَنْ وِلَايَةٍ شَرْعِيَّةٍ او زمونږ دليل دادې.چه د بائن كاوه تصرف ددې د اهل نه صادريږى .( او) ددې محل اړخ تـه منسوب دي.( او تصرف كونكى ته) شرعى ولايت هم ( حاصل) دې وَلَا خَفَاءَ فِى الْأَهْلِيَّةِ وَالْمَحَلِّيَّةِ او په اهليت او محليت كي خوهيڅ خفاء نشته وَالدَّلَالَةُ عَلَى الْوِلَايَةِ أَنَّ الْحَاجَةَ مَاسَّةٌ إِلَى إِثْبَاتِهَا او په ولايت باندې دلالت دادې.چه د ولايت ثابتولو حاجت موجود دې كي لَا يَنْسَدَّ عَلَيْهِ بَابُ التَّدَارُكِ چې په خاوند باندې د تدارك ( راګرځولو) دروازه بند نه شى وَلَا يَقَعُ فِى عُهْدَتِهَا بِالْمُرَاجَعَةِ مِنْ غَيْرِ قَصْدٍ او خاوند د قصد نه بغير مراجعت سره دښځې په ذمه كي پريونځي

تشريح:-زمونږدليل دا دې.چه د بائن كولوتصرف د خپل اهل نه صادرشوې دې.اوخپل محل اړخ ته منسوب

دي.اوتصرف كونكى ته شرعى تصرف هم حاصل دي.اوچه كوم تصرف داسې وى .هغه صحيح وى .نود بائن كولوتصرف هم صحيح شو.

اودخاوندپه اهليت كي څه پټوالې نشته.ځكه چې كلام دخپل اهل نه صادر شوې دې.اودا خبره هم ښكاره ده.چه ښځه دابانت دمحل اهل ده.هم دا وجه ده.چه ښځه په اتفاق سره د بيونت غليظه محل دې.

اوپه يوطلاق بائن باندې ولايت د شرعى حاجت د امله ثابته ده.ځكه چې بعضې وخت سړې د خپلې ښځې نه ډيرسخت نفرت كوى .اودا په داسې طريقه باندې جلا كول غواړى .چه دده لپاره رجوع كول هم حلال نه وى .اود پښيمانتيا په وخت كي د حلاله نه سوا ورله امكان هم پاته نه وى .اودا مقصد نه په طلاق رجعى پوره كيداې شى اونه په درې طلاقوسره.په طلاق رجعى سره خوځكه نشى ثابتيږى .چه بعضې وخت بې اراده رجعت ثابت شى .حالانكه د خاوند اراده دده جلا كول وى .اوپه درې طلاقوسره دا مقصد ځكه نشى حاصليدې.كه خاوند خپلې ښځې ته درې طلاقه وركړل.اوپه حلاله كولوراضى نه وى .نوپه داسې صورت كې اګرچه د نكاح تازه كولوپه ذريعه تدارك كول غواړى .خوتدارك نشى كولې.ځكه چې اوس د تدارك دروازه بنده شوې ده.نوچونكه په دې صورتونوكي اړتيا نه پوره كيږى .نوځكه شريعت د يوطلاق بائن اجازت وركړلو.چه په داسې طريقه باندې جدائى هم راشى .چه دده لپاره د رجعت ګنجائش پاته نه وى .اود نكاح تازه كولوپه ذريعه دروازه هم پرانستې وى .نوثابته شوه چې خاوند ته د يوطلاق بائن وركاوه ولايت شرعا حاصل دې.

**وَلَيْسَتْ كِنَايَاتٍ عَلَى التَّحْقِيقِ** اودا( كنانى الفاظ) په حقيقت كي كنايه عن الطلاق نه دى **لِأَنَّهَا عَوَامِلُ فِي حَقَائِقِهَا** ځكه چې دا الفاظ پخپله حقيقى معنى كي عمل كونكى دى .( مستعمل دى )

**حل اللغة:** ① **عوامل:** جمع د عاملة.عمل كونكي ② **حقائق:** جمع د حقيقت ده ]

**تشريح:**-[وليست بكنايات] نه د امام شافعى رحمه الله د دليل خواب دا دې.دځواب حاصل دا دې.چه موږدا نه منو.چه په كنايه الفاظ په حقيقت كي د طلاق نه كنايه ده.ځكه چې دا خپل حقيقى معنى كي مستعمل دى .اوكنايه ورته مجازاً وئيلى شوى دى .ځكه چې دا الفاظ په كومومعانيوكي مستعمل دى .په هغې كي پټوالې دې.خوچه د طلاق نيت په كي اوكړې شى .نوهغه پټوالې ختم شو.نودا الفاظ به په خپله حقيقى معنى كي عمل كوى .اوچه كوم لفظ په خپله حقيقى معنى كي عمل كوى .هغه كنايه نه وى .

**وَالشَّرْطُ تَعْيِينُ أَحَدِ نَوْعَيِ الْبَيْنُونَةِ دُونَ الطَّلَاقِ** اود بينونت شرط دوې [دوه] قسمونوكي يو متعين كول دى .طلاق ( متعين كول) نه دى

**تشريح:**- په [والشرط تعيين] سره هم دامام شافعى رحمه الله د دليل نه خواب دې.د خواب حاصل دا دې.چه د نيت شرط لګول كه د طلاق په وجه وى .نوستا دليل جوړيدې شى .خوداسې نه ده.بلكه دا د بينونت په دوو قسمونوغليظه اوخفيفه كي د يود متعين كاوه لپاره دې.دطلاق لپاره نه دې.يعنى نيت دبائن لپاره شرط دې.د مطلق طلاق لپاره نه دې.

**وَانْتِقَاصُ الْعَدَدِ لِثُبُوتِ الطَّلَاقِ بِنَاءً عَلَى زَوَالِ الْوُصْلَةِ** اود عدد كمول طلاق ثابتولو په وجه دى .د تعلق زائل كاوه باندې د بناء كاوه په وجه

**تشريح:**- په دې عبارت سره هم د امام شافعى رحمه الله د دليل خواب وركوى خواب دا دې.چه دطلاق عدد كميدل د بينونت په ضمن كي دطلاق ثابت كيدو په وجه دى .ځكه چې طلاق بائن د نكاح زائله كاوه لپاره دې.او كوم ځيزچه د نكاح تعلق زائله كوى .نوپه هغې سره د طلاق عدد كميږى .تحقيق دا دې.چه د طلاق د عدد په كموالى اوپه طلاق بائن كي څه منافات نشته.نودعدد كميدل ددې د طلاق بائن په حيثيت سره دى



**وَإِنَّمَا تَصِحُّ نِيَّةُ الثَّلَاثِ فِيهَا لِتَنَوُّعِ الْبَيْنُونَةِ إِلَى غَلِيظَةٍ وَخَفِيفَةٍ** اود دريو نيت صحيح دې.په دې كي د بينونت غليظه او خفيفه اړخ ته منقسم كيدلو په وجه ، **وَعِنْدَ انْعِدَامِ النِّيَّةِ يَثْبُتُ الْأَدْنَى** اود عدم نيت په وخت به ادنى ثابتيږى **وَلَا تَصِحُّ نِيَّةُ الِاثْنَتَيْنِ عِنْدَنَا** او زموږ په نيز د دوې [دوه] نيت صحيح نه دې **خِلَافًا لِزُفَرَ** رحمه الله د امام زفر رحمه الله اختلاف دې **لِأَنَّهُ عَدَدٌ** ځكه چې دوې [دوه] عدد دې **وَقَدْ بَيَّنَّاهُ مِنْ قَبْلُ** او موږ وړاندې بيان كړى دى.

**تشريح:**- دا عبارت د يو سوال خواب دې.سوال دا دې.چه كه دا الفاظ د كنايه په خپله حقيقى معنى كي عمل كونكى دى .نوپكار دا ده.چه په [أنت بائن] كي د درې دريې طلاقونيت كول صحيح نه وو.لكه ځنګه چې په [أنت طالق] كي د درې طلاقونيت كول صحيح نه دې.

خواب ددرې طلاقونيت كول د دې امله صحيح نه دى .چه دا په فى نفسه عمل كونكې دې.بلكه ددې امله دې.چه بينونت ويش شوې دې غليظه اوخفيفه ته.اوچه نيت نه وى نوپه دغه وخت كي به ادنى ثابتيږى .اوهغه يوطلاق بائن دې.البته زموږ په نيزد دوو نيت صحيح نه دې.دامام زفر رحمه الله په كي اختلاف دې.ځكه چې دوې [دوه] عدد محض دې.تفصيل وړاندې تيرشوې دې.

## درې ځله د [إعتدى] وئيل اوداول نه طلاق اودوو نه حيض مراداخستل

**وَإِنْ قَالَ لَهَا: اعْتَدِّي اعْتَدِّي اعْتَدِّي** اوكه ښځې ته ئې اووئيل.ته عدت تير كړه،ته عدت تير كړه،ته عدت تير كړه **وَقَالَ: نَوَيْتُ بِالْأُولَى طَلَاقًا وَبِالْبَاقِي حَيْضًا** اوبيا اووائى .چه ما په اولنى (لفظ) سره د طالق اراده كړې وه.اود پاته نه حيض **دِينَ فِي الْقَضَاءِ** نوقضاءً به ئې تصديق كولاى شى

**تشريح:**- صورت د مسئلې،كه خاوند خپلې ښځې ته درې ځله [إعتدى] اووئيل.اودا ئې اووئيل.ما په اولنى لفظ سره طلاق اوپه دوهم اودريم سره حيض اراده كړې وه.نودده تصديق به كولې شى .هم دا قول دامام شافعى امام مالك اوامام احمد رحمه الله هم دې.

**لِأَنَّهُ نَوَى حَقِيقَةَ كَلَامِهِ** ځكه چې ده دخپل كلام د حقيقت نيت كړې دې ، **وَلِأَنَّهُ يَأْمُرُ امْرَأَتَهُ فِي الْعَادَةِ بِالِاعْتِدَادِ بَعْدَ الطَّلَاقِ** اوځكه چې په عادت كي خپلې ښځې ته د عدت تيرولوحكم د طلاق نه روسته وركولې شى . **فَكَانَ الظَّاهِرُ شَاهِدًا لَهُ** نوظاهرهم ددې ګواه دې

**تشريح:**- دليل دا دې.چه دې كس دخپل كلام په دوهم اودريم لفظ سره دحقيقى معنى نيت اوكړلو.اوپه اولنى لفظ سره ئې د هغه څيزنيت اوكړلو.چه دده كلام ئې احتمال لرو.ځكه به دواړه نيتونه قضاءً معتبروى .② دوهم دليل دا دې.چه عام طورانسان خپلې ښځې ته د طلاق نه روسته دعدت تيرولوحكم وركوى .نوځكه به قضاء دده نيت معتبروى .

**وَإِنْ قَالَ: لَمْ أَنْوِ بِالْبَاقِي شَيْئًا** اوكه وې وئيل.چه ما په پاته كي د څه نيت نه وو كړې **فَهِيَ ثَلَاثٌ** نودا به درې طلاقه وى **لِأَنَّهُ لَمَّا نَوَى بِالْأُولَى الطَّلَاقَ** ځكه چې د اولنى نه ئې د طلاق نيت اوكړلو **صَارَ الْحَالُ حَالَ مُذَاكَرَةِ الطَّلَاقِ** نودا حالت د مذاكره د طلاق شو **فَتَعَيَّنَ الْبَاقِيَانِ لِلطَّلَاقِ بِهَذِهِ الدَّلَالَةِ** نوپاته به هم ددې دلالت په وجه طلاق متعين كيږى **فَلَا يُصَدَّقُ فِي نَفْيِ النِّيَّةِ** نود نيت د نفى په صورت كي به دده تصديق نشى كولې

**تشريح:**-اوكه خاوند اووئيل.چه ما په دوهم اودريم لفظ سره د هيڅ نيت نه وو كړې.نوپه دې صورت كي به درې طلاقه واقع كيږى .ځكه چې هركله ده په اولنى لفظ سره د طلاق نيت كړې وى .نوورپسې دوهم اودريم لفظ په حالت د مذاكره دطلاق كي واقع شول.نو دوهم اودريم لفظ به ددې قرينې د امله د طلاق لپاره متعين شى .اګرچه دا كس ددې نه انكار كوى .چه ما په دوهم اودريم لفظ سره دهيڅ اراده نه وه كړې.

بِخِلَافِ مَا إِذَا قَالَ: لَمْ أَنْوِ بِالْكُلِّ الطَّلَاقَ حَيْثُ لَا يَقَعُ شَيْءٌ لِأَنَّهُ لَا ظَاهِرَ يُكَذِّبُهُ، وَبِخِلَافِ مَا إِذَا قَالَ: نَوَيْتُ بِالثَّالِثَةِ الطَّلَاقَ دُونَ الْأُولَيَيْنِ حَيْثُ لَا يَقَعُ إِلَّا وَاحِدَةٌ په خلاف دهغه صورت كي چې اووائي .ما په دريم لفظ باندې د طلاق نيت كړې وو.په اولنودوو لفظونو سره مې نه وو كړې.نوصرف يوبه واقع كيږي لِأَنَّ الْحَالَ عِنْدَ الْأُولَيَيْنِ لَمْ تَكُنْ حَالَ مُذَاكَرَةِ الطَّلَاقِ خكه چې د دوو اولنوپه وخت كښې حالت د مذاكره د طلاق نه وو

تشريح:-ددې په خلاف كي كه دا اووائي .چه زما په درې واړه الفاظوسره د هيڅ اراده نه وه.نوهيڅ طلاق نه واقع كيږي .خكه چې داسې څه ښكاره قرينه نشته.چه د ده كلام دروغ كړي . كه دهٔ په دريم لفظ سره د طلاق اراده كړې وی .خوپه اولنودوؤ ئې د څه اراده نه وی كړې.نوصرف يوطلاق به واقع كيږي .خكه چې د اولنودوولفظونووخت د طلاق د مذاكره نه وو.

وَفِي كُلِّ مَوْضِعٍ يُصَدَّقُ الزَّوْجُ عَلَى نَفْيِ النِّيَّةِ اوپه هرځائې كي چې تصديق كولای شی خاوند په نيت باندې كولې شی .د قسم سره إِنَّمَا يُصَدَّقُ مَعَ الْيَمِينِ لِأَنَّهُ أَمِينٌ فِي الْإِخْبَارِ عَمَّا فِي ضَمِيرِهِ خكه چې خاوند امين دې. نود هغه څيزپه خبر وركولوكي .څه چې دده په زړه كي دی وَالْقَوْلُ قَوْلُ الْأَمِينِ مَعَ الْيَمِينِ اود خاوند قول به سره د قسم معتبر وی

تشريح:- صاحب دهدايه يوه ضابطه ذكركړې ده.هغه دا چې په كوم صورت كي د خاوند د قول تصديق كيږي .نودده د قول تصديق بـه د قسم خوړلوسره معتبروی .دليـل دا دې.چـه دا كـه د خپـل زړه د خبرې په خبروركولوكي امين دې.اودامين قول د قسم سره معتبروی .

ﷺپه دې مسئله كي څواحتمالات دی .① په درې الفاظوئې د طلاق نيت كړې وی .② صرف په اولنی ئې دطلاق نيت كړې وی ③صرف په اولنی ئې د حيض نيت كړې وی ④په اولنودوو لفظونوسره ئې د طلاق نيت كړې وی .⑤ په اولنی اودريم ئې دطلاق نيت كړې وی .⑥ په دوهم اودريم ئې دطلاق نيت كړې وی .اوپه اولنی دحيض.په دې شپږ واړه صورتونوكي به درې طلاقه واقع كيږي .

ﷺ①په دوهم ئې دطلاق نيت كړې وی .② په اولنی ئې د طلاق اوپه دوهم ئې دحيض نيت كړې وی ③ په اولنی ئې د طلاق اوپه دريم دحيض نيت كړې وی .④ په روستنودوو كلمونې دطلاق نيت كړې وی .⑤ په اولنودوو كلمونې صرف د حيض نيت كړې وی .⑥ په لومړنی اودريمه ئې دحيض نيت كړې وی .⑦ په اولنی او دوهم ئې د طلاق نيت كړې وی .اوپه دريم د حيض.⑧ په اولنی اودريم ئې د طلاق اوپه دوهم ئې د حيض نيت كړې وی .⑨ په اولنی او دوهم ئې دحيض اودريم ئې د طلاق نيت كړې وی .⑩په اولنی اودريم ئې د حيض اوپه دوهم ئې د طلاق نيت كړې وی . دوهم ئې صرف دحيض نيت كړې وی .په دې يوولس صورتونوكي به دوې [دوه] طلاقه واقع كيږي .

ﷺ①په اولنو درې واړه كلمونې د حيض نيت كړې وی .② صرف په دريمه ئې د طلاق نيت كړې وی .③ په صرف دريمه ئې دحيض نيت كړې وی .④ په دويمه كلمه ئې د طلاق اودريمه ئې د حيض نيت كړې وی .⑤په دوهم اودريمه كلمه ئې د حيض اوپه لومړنی ئې د طلاق نيت كړې وی .⑥ په روستنودوؤ كلمو ئې صرف دحيض نيت كړې وی .په دې شپږو صورتونوكي به صرف يوطلاق واقع كيږي .اوكه د څه نيت ئې نه وی كړي.نويوطلاق به هم نه واقع كيږي .فتح القدير ،والله اعلم بالصواب.

## بأب تفويض الطلاق

ژباړه:- ( دا) باب ( غيرطرف ته) د طلاق سپارلو ( په بيان كښې ) دې .

تشريح:- په دې باب كي درې فصلونه بيان شوی دی .[① فصل في الإختيار② فصل في الإمر باليد③ فصل المشية]

### د اختياربيان



فَصْلٌ: فِي الْاِخْتِيَارِ ( دا)فصل ښځې ته د اختيار( ور كاوه په بيان كي ) دې وَإِذَا قَالَ لِامْرَأَتِهِ: اِخْتَارِي يَنْوِي بِذٰلِكَ الطَّلَاقَ اوكله ئې چې خپلې ښځې ته اووئيل، اختاری ، په داسې حال كي چې ددې نه ئې د طلاق نيت كړې وی أَوْ قَالَ لَهَا: طَلِّقِي نَفْسَكِ يا ئې دې ته اووئيل،طلقی نفسك، فَلَهَا أَنْ تُطَلِّقَ نَفْسَهَا مَا دَامَتْ فِي مَجْلِسِهَا ذٰلِكَ نود ښځې لپاره جائز دی .چه دا خپل ځان ته طلاق وركړي .تركومه پورې چې دا په دې مجلس كي موجود ده فَإِنْ قَامَتْ مِنْهُ أَوْ أَخَذَتْ فِي عَمَلٍ آخَرَ نوكه ددې مجلس نه پاسيدله.يا په بل څه كاركي لګيا شوه خَرَجَ الْأَمْرُ مِنْ يَدِهَا نو اختيار ددې د لاس نه اووتلو

تشريح:-صورت د مسئلې ښكاره دې.اود منقول دليل حاصل دادې.چه دقياس تقاضا خودا ده.چه په دې لفظ د[اختاری] سره د نيت باوجود طلاق واقع نشی .خكه چې خاوند په دې لفظ سره دطلاق واقع كاوه مالك نه دې.كه ده چرته [اخترتك من نفسی يا إخترت نفسی منك] اووئيل.نوطلاق نه واقع كيږي . او انسان چې په خپله د يوڅيزمالك نه وی .نوبل به څه دهغې مالك كړي .

لِأَنَّ الْمُخَيَّرَةَ لَهَا الْمَجْلِسُ بِإِجْمَاعِ الصَّحَابَةِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ أَجْمَعِينَ(¹)خكه كومې ښځې ته چې اختيار وركړې شوې دی.د هغې لپاره مجلس دې.د صحابه كرامو‌ﷺ د اجماع په وجه

تشريح:- ①خودصحابو‌ﷺ داجماع پـه وجـه قيـاس پريښـولې (پريخـودې) شـوې دې.خكه چې دحضرت عمر،عثمان،علی ،ابن مسعود،ابن عمر،جابر،زيدبن ثابت،اوعائشې ﷺ نه منقول دی .چه كله سړی ښځې ته اختيار وركړلو .نو دښځې لپاره ترهغه وخته پورې اختيارشته.ترڅوچه هغه د خپل مجلس نه پاسيدلې نه وی .اوچه كله پاسيدله.نواختيارئې ختم شو.اوددې خلاف منقول نه دې.نوخكه دا د اجماع قائم مقام شو.په اجماع سره د ښځې لپاره خيارثابت شو.اودا هم ثابت شوه.چه دا خيارد مجلس سره خاص دې

وَلِأَنَّهُ تَمْلِيكُ الْفِعْلِ مِنْهَا او خكه چه( تفويض) هغه د فعل مالك جوړول. وَالتَّمْلِيكَاتُ تَقْتَضِي جَوَابًا فِي الْمَجْلِسِ كَمَا فِي الْبَيْعِ په مجلس كي د ځواب تقاضا كوی .لكه څنګه چې په بيع كي ،لِأَنَّ سَاعَاتِ الْمَجْلِسِ اُعْتُبِرَتْ سَاعَةً وَاحِدَةً خكه چې د مجلس واړه ساعتونه د يو ساعت ( پشان) شمارلې كيږي

حل اللغة° ① تمليک:مالك جوړول ② ساعات: جمع د ساعة: وخت ]

تشريح:- دوهم عقلی دليل دا دې.چه ښځې ته د طلاق اختياروركول په حقيقت كي هغه د طلاق مالكه جوړول دی .اوتمليكات تقاضا كوی .چه ځواب هم په مجلس كښې ملاؤ شی .لكه څنګه چې په بيع كي په كوم مجلس كي ايجاب اوشی .نوهم په هغه مجلس كي قبول پكار دې.خكه چې دمجلس واړه وختونه د يووخت پشان دی .هم دا وجه ده.كه په يومجلس كي آيت دتلاوت مكرراولوستې شی .نويوه سجده به واجبيږي . لنډيز دا چې ښځه په دغه مجلس كي طلاق واقع كولې شی .اودهغې مجلس د بدليدونه روسته ورته اختياردطلاق پاته نه پاتې كيږي .

إِلَّا أَنَّ الْمَجْلِسَ تَارَةً يَتَبَدَّلُ بِالذَّهَابِ عَنْهُ خو داچه مجلس كله دده په تلو سره بدليږي وَتَارَةً بِالْاِشْتِغَالِ بِعَمَلٍ آخَرَ او كله په بل څه كاركي د مشغوليدو په وجه إِذْ مَجْلِسُ الْأَكْلِ غَيْرُ مَجْلِسِ الْمُنَاظَرَةِ خكه چې مجلس د اكل د مناظرې د مجلس نه علاوه دې. وَمَجْلِسُ الْقِتَالِ غَيْرُهُمَا اود قتال مجلس ددې دواړو نه غير دې

حل اللغة° ① الذهاب: تلل ② الاشتغال: بوخت كيدل]

1) قال الزيلعی ﷫ فيه عن ابن مسعود وجابر،وعمر،وعثمان وعبدالله بن عمروبن العاص ﷺثم ذكررواياتهم ﷺ (نصب الرأية ۳/۲۱۵)_

تشريح:-البته د مجلس په بدلېدوکي دوې [دوه] صورتونه دی .① يودا چې دمجلس نه پاسی .اولا<ش ②. دوهم دا چې هم په مجلس کې ناست وی .اوبل کارشروع کړی .مثلاً د خوراك ځكاك د فراغت نه روسته د مناظرې مجلس پيل شی .نودا هم د مجلس بدلېدل دی .[اللهم اغفرلکاتبه ولوالديه ولمن سعی فيه]

په دغه مجلس کې دخوراك ځكاك مجلس پيل وی .اوهم

## دښځې خيارمجلس په اودرېدو سره ختمېدل

وَيَبْطُلُ خِيَارُهَا بِمُجَرَّدِ الْقِيَامِ اود ښځې خيار صرف په ودرېدلو سره باطلېږی. لِأَنَّهُ دَلِيلُ الْإِعْرَاضِ، وَالسَّلَمِ خکه چې قيام د اعراض دليل دې.په خلاف د( بيع) صرف او سلم لِأَنَّ الْمُفْسِدَ هُنَاكَ الِافْتِرَاقُ مِنْ غَيْرِ قَبْضٍ خکه چې دلته کې مفسد بغيره د قبضې د مجلس نه جداکيدل دی

حل اللغة: ① مجرد القيام: صرف ودرېدل ② الافراق: جلا کيدل]

تشريح:- مسئله دا ده.چه دښځې اختيارصرف د مجلس نه په پاسيدوسره ختميږی .دليل دا دې.چه ودرېدل د اعراض اومخ اړولودليل دې.بيع سلم اوبيع صرف ددې په خلاف ده.په هغې کې هم په مجلس کې قبض کول ضروری دی .خوصرف د مجلس نه په اودرېدو سره بيع سلم اوبيع صرف نه باطلېږی .خکه چې د بيع صرف اوبيع سلم باطلونکې دقبض کولونه بغيرد مجلس نه جداکيدل دی .اوصرف په قيام سره د مجلس نه جلا کيدل نه موجوديږی .ددې املة بيع صرف اوبيع سلم د مجلس نه صرف په اودرېدو سره نه باطلېږی .

ثُمَّ لَا بُدَّ مِنَ النِّيَّةِ فِي قَوْلِهِ: اخْتَارِي بيا نيت ضروری دې.دده په قول اختاری کې لِأَنَّهُ يَحْتَمِلُ تَخْيِيرَهَا فِي نَفْسِهَا خکه دا احتمال لری .د ښځې په نفس کې هغې ته د اختيار ورکولو وَيَحْتَمِلُ تَخْيِيرَهَا فِي تَصَرُّفٍ آخَرَ غَيْرِهِ او احتمال لری دې ته د اختيار ور کاوه په بل څه تصرف کې ددې نه علاوه.

حل اللغة: ① تخيير: اختيار ورکول]

تشريح:- صاحب دهدايه رحمه الله فرمائی .چه د خاوند په قول [اختاری] کې دطلاق نيت ضروری دې.خکه چې په دې لفظ کې دطلاق اوغيرطلاق دواړو احتمال شته.نوداحتمال زائل کاوه لپاره د نيت اړتيا شته.

## داختاری په جواب کې د ښځې ځان مختاره کول

فَإِنْ اخْتَارَتْ نَفْسَهَا فِي قَوْلِهِ اخْتَارِي نوکه دغه ښځې خپل ځان مختاره کړلو. د ده د قول اختاری په صورت کې كَانَتْ وَاحِدَةً بَائِنَةً نوبائنه به شی .

تشريح:- مسئله دا ده.چه د خاوند د [اختاری] لفظ ونيلو نه روسته ښځې هم په دغه مجلس کې ځان مختاره کړلو.نوپه يوطلاق سره به بائنه شی .هم دا قول د حضرت علی رضي الله عنه دی.

وَالْقِيَاسُ أَنْ لَا يَقَعَ بِهَذَا شَيْءٌ وَإِنْ نَوَى الزَّوْجُ الطَّلَاقَ او قياس دا دې.چه په دې باندې څه نه واقع کيږی .اگرچه خاوند د طلاق نيت کړې وی لِأَنَّهُ لَا يَمْلِكُ الْإِيقَاعَ بِهَذَا اللَّفْظِ خکه چې خاوند په دې لفظ د طلاق واقع کولومالك نه دی فَلَا يَمْلِكُ التَّفْوِيضَ إِلَى غَيْرِهِ نود خپل ځان نه بل چاته د حواله کولومالك به هم نه وی

تشريح:- صاحب دهدايه رحمه الله فرمائی .چه دقياس تقاضا هم دا ده.چه په دې لفظ سره هيڅ طلاق واقع نشی .اگرچه خاوند دطلاق نيت کړی وی .خکه چې خاوند په خپله په دې لفظ د طلاق ورکولومالك نه دې.نوبل به څنگه په دې لفظ د طلاق ورکولومالك شی .

إِلَّا أَنَّا اسْتَحْسَنَّاهُ لِإِجْمَاعِ الصَّحَابَةِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ خومونږ دا تصرف استحساناً جائز کړلو.دصحابو رضي الله عنهم د اجماع په وجه وَلِأَنَّهُ بِسَبِيلٍ مِنْ أَنْ يَسْتَدِيمَ نِكَاحَهَا اوددې املة چې خاوند ته دا اختيار شته.چه هغه ددې نكاح برقراره



اوساتی ،أَوْ يُفَارِقَهَا يا دا جلا کړی . فَيَمْلِكُ إِقَامَتَهَا مَقَامَ نَفْسِهِ فِي حَقِّ هَذَا الْحُكْمِ نود خاوند دې ښځې لره خپل قائم مقام جوړل به هم په دې حكم کې وی

حل اللغة: ① سبيل: لاره،طريقه ② يستديم: هميشه لپاره پاتې کيږی ]

تشريح:- خود صحابو رضي الله عنهم داجماع په وجه استحساناً دا جائزشو.② دوهم دليل دا دې.چه خاوندته دا اختيار حاصل دې.چه هغه دخپلې ښځې نكاح قائمه کړی .يا هغه جلا کړی .نوهغه په دې اختيارکې خپله ښځه خپل قائم مقام هم جوړولې شی .

ثُمَّ الْوَاقِعُ بِهَا بَائِنٌ نوپه دې به بائن واقع کيږی لِأَنَّ اخْتِيَارَهَا نَفْسَهَا بِثُبُوتِ اخْتِصَاصِهَا بِهَا وَذَلِكَ فِي الْبَائِنِ

تشريح:صاحب دهدايه رحمه الله فرمائی .چه په [اختاری] لفظ سره ښځه په يوطلاق بائنه کيږی .خکه چې دښځې خپل ځان مختاره کول به په هغه وخت کې ثابتيږی .چه دنفس سره دښځې اختصاص ثابت شی .يعنی د خاوند ملك زائل شی .اوښځه دخپل ځان مالکه شی .اوښکاره ده.چه دا خبره په طلاق بائن سره حاصليږی .

وَلَا يَكُونُ ثَلَاثًا اودرې به پرې نه واقع کيږی وَإِنْ نَوَى الزَّوْجُ ذَلِكَ اگرچه خاوند ددې نيت کړې وی .لِأَنَّ الِاخْتِيَارَ لَا يَتَنَوَّعُ، بِخِلَافِ الْإِبَانَةِ خکه چې اختيارويش کيداې نشی .په خلاف د ابانت لِأَنَّ الْبَيْنُونَةَ قَدْ تَتَنَوَّعُ خکه چې بينونت ويش کيداې شی .

تشريح:- که خاوند د درې طلاقو نيت کړې وی .نودرې طلاقه نه واقع کيږی .خکه چې اختيارنه تقسيميږی .البته بينونت غليظه اوخفيفه ته ويش کيداې شی .ددې وجې په [أنت بـائن] کې د درې طلاقونيت صحيح دې. خود اختيارپه صورت کې د درې طلاقو نيت صحيح نه دې.

## د زوجينوپه كلام کې د نفس د لفظ حيثيت

قَالَ قدوري رحمه الله فرمائی وَلَا بُدَّ مِنْ ذِكْرِ النَّفْسِ فِي كَلَامِهِ أَوْ فِي كَلَامِهَا،اود نفس ذکر ضروری دې.د خاوند په کلام کې ،يا د ښځې په کلام کې حَتَّى لَوْ قَالَ لَهَا: اخْتَارِي ترددې که ښځې ته ئې اوونيل،اختاری فَقَالَتْ: قَدْ اخْتَرْتُ فَهُوَ بَاطِلٌ بيا ښځې اوونيل،اخترت، نودا باطل دې

تشريح:- مسئله دا ده.چه د اختيارپه لفظ سره په طلاق واقع کولوکې دا ضروری ده.چه د ښځې يا خاوند په کلام کې لفظ د نفس يا کوم چې ددې قائم مقام وی .هغه ذکروی .[دنفس قائم مقام لفظ د اختـاره او تطليقـه] دی .نوکه خاوند [اختاری]اوونيل.اوښځې [اخترت] اوونيل.نوطلاق نه واقع کيږی .

لِأَنَّهُ عُرِفَ بِالْإِجْمَاعِ خکه دا په اجماع سره معلوم شوی دی وَهُوَ فِي الْمُفَسَّرَةِ مِنْ أَحَدِ الْجَانِبَيْنِ او اجماع په دې کې ده.چه په احدالجانبين کې تفسير شوې وی

تشريح:-دليل دا دې.چه د [اختار] په لفظ سره د طلاق واقع کيدل د صحابو رضي الله عنهم په اجماع سره ثابت دې.اود صحابو رضي الله عنهم اجماع په هغه صورت کې ده.چه د ښځې خاوند نه د يوپه کلام کې لفظ د ،نفس، يا ددې قائم مقام ذکروی .نواجماع چې څنگه واقع شوې وی .دهغې پورې به خاص وی .خکه چې دا اجماع خلاف القياس ده.

وَلِأَنَّ الْمُبْهَمَ لَا يَصْلُحُ تَفْسِيرًا لِلْمُبْهَمِ الْآخَرِ او خکه چې مبهم د مبهم تفسير جوړيدلو صلاحيت نه لری وَلَا تَعْيِينَ مَعَ الْإِبْهَامِ او ابهام سره تعين نه کيږی .

حل اللغة: ① المبهم: غيرواضح]

تشريح:- دوهم دليل دا دې.چه دلته د خاوند قول [اختاری] مبهم دې.اود ښځې قول کوم چې ددې تفسيردې. نوهغه هم مبهم دې.اويومبهم د بل مبهم تفسيرنشی واقع کيدې.نوددې املة به هم دا کلام باطل وی .

اوکه ته دا اعتراض اوکړي.چه خاوند دطلاق نيت اوکړلو.اوطلاق ئې متعين کړلو.نوخواب دا دې.چه دواړو طرفونوته ابهام موجود وی .نوتعين نشی کيدې.

**د [اختاری نفسك] په جواب کي [اخترت] وئيل**

وَلَوْقَالَ لَهَا : اخْتَارِي نَفْسَكِ اوکه ( خاوند ) اووئيل.ته خپل نفس اختيار کړه فَقَالَتْ : اخْتَرْتُ ښځي اووئيل.ما اختيار کړو تَقَعُ وَاحِدَةٌ بَائِنَةٌ نو يو بائنه به واقع کيږی لِأَنَّ كَلَامَهُ مُفَسَّرٌ خکه چې د سړی کلام تفسير سره واقع شوي دي وَكَلَامُهَا خَرَجَ جَوَابًا لَهُ او د ښځي کلام ددې په ځواب کي وتلې دې فَيَتَضَمَّنُ إِعَادَتَهُ نو( دا) د سړی د کلام واپس کاوه ته متضمن وی

تشریح:- مسئله،خاوندخپلې ښځي ته اووئيل.[اختاری نفسك] هغې ورته په ځواب کي اووئيل. [اخترت] او د نفس ذکرئي اونکړلو.نويوطلاق بائن واقع کيږی .دليل دا دې.چه د سړی کلام چې نفس ئې په کي ذکرکړلو.مفسردې.او دښځي کلام د خاوند کلام په ځواب کي واقع شوې دې.نودښځي ځواب د خاوند د سوال ځواب لره متضمن دې.خکه چې دا قاعده ده.چه د مذکورفي السوال کالمعاد في الځواب وی .يعنی کوم څيزچه په سوال کي ذکرشی .هغه که په ځواب کي ذکرهم نشی . نو داسې دې لکه چې دوباره ذکرشوې وی .

وَكَذَا لَوْقَالَ اخْتَارِي اخْتِيَارَةً اوهم دغه ډول که وې وئيل.اختيار کړه ته اختيارول فَقَالَتْ: اخْتَرْتُ لِأَنَّ الْهَاءَ فِي الِاخْتِيَارَةِ تُنْبِئُ عَنْ الِاتِّحَادِ وَالِانْفِرَادِ خکه چې په،اختيارة، کي تا د متحد او منفرد کيدلو خبر ورکوی وَاخْتِيَارُهَا نَفْسَهَا هُوَ الَّذِي يَتَّحِدُ مَرَّةً وَيَتَعَدَّدُ أُخْرَى اود ښځي نفس اختيارول کله متحد وې .او کله متعدد وی فَصَارَ مُفَسَّرًا مِنْ جَانِبِهِ نود سړی د اړخه به کلام مفسر وی

تشریح:- دويمه مسئله دا ده.چه سړی په خپلو الفاظوکي اووئيل.[اختاری إختيارة] اوښځي په ځواب کي اووئيل.[اخترت] نوپه دې صورت کي يوطلاق بائن واقع کيږی .نواوس د خاوند د کلام مقصد دا دې.چه دې خپلې ښځي ته په داسې څيزکي اختياروركول غواړی .په کوم کي چې وحدت اوتعدد وی .اووحدت اوتعدد صرف په دې کي دی .چه ښځه خپل نفس اختيارکړی .خکه که ښځه په يوطلاق سره خپل ځان مختارکړی .نوپه دې کي وحدت بيامونډې شو.اوکه په درې طلاقوسره ئې اختيارکړل.نوپه دې اختيارکي به تعدد وی .نود خاوند داړخه کلام مفسرشو.لکه چې ده اووئيل.چه ته خپل نفس اختيارکړه.

وَلَوْقَالَ : اخْتَارِي او که سړی اووئيل.اختيار کړه ته فَقَالَتْ : قَدْ اخْتَرْتُ نَفْسِي ښځي اووئيل.ما خپل نفس اختيار کړو يَقَعُ الطَّلَاقُ إِذَا نَوَى الزَّوْجُ نو طلاق به واقع کيږی .په دې شرط چې خاوند نيت کړې وی .لِأَنَّ كَلَامَهَا مُفَسَّرٌ خکه چې د ښځي کلام مفسر واقع شوې دې وَمَا نَوَاهُ الزَّوْجُ مِنْ مُحْتَمَلَاتِ كَلَامِهِ خاوند چې د کوم شی نيت کړې دې او هغه د خاوند د کلام محتملاتو ځنې دې.

تشریح:-دريمه مسئله دا ده.چه خاوند ښځي ته اووئيل.[اختاری] اوښځه په ځواب کي اووائی .چه [اخترت نفسی]نوپه دې صورت کي هم يوطلاق بائن واقع کيږی .دليل دا دې.چه دښځي کلام مفسردې.اوسړی چې د کوم څيزنيت کړې وو.يعنی طلاق نوهغه دده د کلام د محتملاتوځنی دې.

**د[اختاری] په جواب کي [أنا أختارنفسی] وئيل**

وَلَوْقَالَ : اخْتَارِي وکه سړی اووئيل.اختيار کړه ته فَقَالَتْ : أَنَا أَخْتَارُ نَفْسِي ښځي اووئيل.زه اختياروم خپل نفس، فَهِيَ طَالِقٌ نودا مطلقه ده

تشریح:- صورت د مسئلې دا دې.چه خاوند خپلې ښځي ته اووئيل.[اختاری] اوښځي په ځواب کي اووئيل.



[أنا أختارنفسی] نوپه دې صورت کي يوطلاق بائن واقع کيږی .

وَالْقِيَاسُ أَنْ لَا تَطْلُقَ او قياس دادې. چې طلاق واقع نشی لِأَنَّ هَذَا مُجَرَّدُ وَعْدٍ أَوْ يَحْتَمِلُهُ خکه چې دا صرف وعده ده.يا ددې احتمال لری فَصَارَ كَمَا إِذَا قَالَ لَهَا : طَلِّقِي نَفْسَكِ نو داسې شوه.لکه چې ښځي ته ئې اووئيل. ته خپل ځان ته طلاق ورکړه فَقَالَتْ: أَنَا أُطَلِّقُ نَفْسِي هغې اووئيل.چه زه خپل نفس ته طلاق ورکوم

تشریح:- اودقياس تقاضا دا ده.چه طلاق دې واقع نشی .وجه دقياس دا ده.چه ښځي [أختار] د مضارع فعل استعمال کړلو.اومضارع د حال اومستقبل دواړو احتمال لری .نوکه ښځي مستقبل مراد کړلو.نودا صرف وعده ده.اوپه صرف وعده سره طلاق نه واقع کيږی .اوکه حال ئې مراد کړې وی .نوپه دې کي کم ازکم د استقبال احتمال هم شته.نودا داسې شوه.چه سړې خپلې ښځي ته اووائی .[طلقی نفسك] اودده ښځي په ځواب کي اووئيل.[أنا أطلقی نفسی] اوپه دې سره طلاق نه واقع کيږی .نوپه [أنا أختارنفسی] سره به هم طلاق نه واقع کيږی .

وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ حَدِيثُ { عَائِشَةَ رضي الله عنها وجه د استحسان د عائشه رضي الله عنها حديث دې فَإِنَّهَا قَالَتْ خکه حضرت عائشه رضي الله عنها فرمانيلی دی لَا بَلْ أَخْتَارُ اللَّهَ وَرَسُولَهُ (¹)نا بلکه زه الله او دده رسول اختياروم اعْتَبَرَهُ النَّبِيُّ ﷺ جَوَابًا مِنْهَا (¹) او نبی کريم ﷺ د حضرت عائشه رضي الله عنها د اړخه دا معتبر ځواب منلې دې

تشریح:-وجه داستحسان دا ده.چه دحضرت عائشې رضي الله عنها نه روايت دې.چه کله دا آيت ((يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ قُلْ لِأَزْوَاجِكَ إِنْ كُنْتُنَّ تُرِدْنَ الْحَيَاةَ الدُّنْيَا وَزِينَتَهَا فَتَعَالَيْنَ أُمَتِّعْكُنَّ وَأُسَرِّحْكُنَّ سَرَاحًا جَمِيلًا)) نازل شو. نو نبی ﷺ حضرت عائشې رضي الله عنها ته اوفرمانيل.زه تاته يوه خبره کوم.خو ته د مورپلار د مشورې نه بغيرځواب مه راکوه.بيا نبی ﷺ ددې آيت خبر راکړلو.حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی .ماورته عرض اوکړلو.چه زه په دې اړه کي د مورپلارسره مشوره نه کوم.بلکه زه الله ﷻ اودهغه رسول ﷺ اوآخرت خوښوم.نبی ﷺ دحضرت عائشې رضي الله عنها د دې خبرې اعتبار اوکړلو.حالانکه حضرت عائشې رضي الله عنها د مضارع صيغه استعمال کړې وه.کوم چې د استقبال احتمال هم لری .نوحضرت عائشې رضي الله عنها دحديث نه ثابته شوه.چه د مضارع په صيغه باندې هم اختيار ثابتيږی .

وَلِأَنَّ هَذِهِ الصِّيغَةَ حَقِيقَةٌ فِي الْحَالِ او خکه چې دا ( لفظ د اختار) په حال کي حقيقت دې وَتَجُوزُ فِي الِاسْتِقْبَالِ كَمَا فِي كَلِمَةِ الشَّهَادَةِ، وَأَدَاءِ الشَّاهِدِ الشَّهَادَةَ

تشریح:-داستحسان دويمه وجه دا ده.چه دمضارع صيغه په حال کي حقيقت دې.اوپه استقبال کي مجازدې.اود حقيقت مراد اخستل هم جائزدی .نودلته به د حال معنی مراد وی .لکه په کلمه د شهادت [أشهد أن لا إله إلا الله وأشهد أن محمداً عبده ورسوله] کي د ايمان اعتبارشوې دې.د ايمان د وعدې اعتبارنه دې شوې.حالانکه په دې کي دمضارع په صيغه شهادت ورکړې شوې دې.② اوهم دغه ډول کله چې ګواه اووائی .[أشهد بكذا] په دې کی حال مراد دې.نوچه دا ثابته شوه.چه حال حقيت دې.نومجاز اړخ ته به تګ نشی کولې.

بِخِلَافِ قَوْلِهَا : أُطَلِّقُ نَفْسِي،او په استقبال کي مجاز دې.لکه کلمه د شهادت، او په اداء د شهادت کي.په خلاف ددې قول، أطلق نفسی لِأَنَّهُ تَعَذَّرَ حَمْلُهُ عَلَى الْحَالِ خکه چې دا په حال باندې محمول کول متعذر دی لِأَنَّهُ لَيْسَ بِحِكَايَةٍ عَنْ حَالَةٍ قَائِمَةٍ خکه چې دا د موجوده حالت حکايت نه دې وَلَا كَذَلِكَ قَوْلُهَا : أَنَا أَخْتَارُ نَفْسِي او دده قول اختارنفسی داسې نه دې لِأَنَّهُ حِكَايَةٌ عَنْ حَالَةٍ قَائِمَةٍ خکه چې دا د حالت قائمه حکايت دې وَهُوَ اخْتِيَارُهَا نَفْسَهَا او هغه ددې خپل نفس اختيارول دی .

¹) أخرجه البخاری فی المظالم باب ۲۵ ومسلم فی الرضاع رقم ۹۶ )
٤٣) أخرجه البخاری فی المظالم باب ۲۵ ومسلم فی الرضاع رقم ۹۶ )_

**تشريح:** صاحب دهدايه رحمه الله فرمائي .چه د [أنا أختار نفسي] په [أنا أطلق نفسي] باندې قياس كول صحيح نه دی .ځكه چې [أطلق] دحال په معنى باندې حمل كول متعذردی .او [أختار] دحال په معنى باندې حمل كول متعذرنه دی .وجه‌دا ده.چه طلاق وركول د ژبې عمل دې.د زړه عمل نه دې.اوځيزمختاره كول د زړه عمل دې.

[@]دويمه خبره دا په ذهن كي واچوئ.چه حكايت د محكى عنه د وجود تقاضا كوی .نود كوم ځيزحكايت چې كولې شی .نوپكارده چې هغه د حكايت نه وړاندې موجود وی .نود [أطلق] لفظ په حال باندې حمل كول ځكه متعذر دې.كه دحال په معنى باندې حمل كړې شی .نودا به حكايت شی .حالانكه دا د څه حالت موجوده حكايت نشی كيدې.ځكه چې په دې لفظ باندې د تلفظ كولونه وړاندې داسې څه ځيزموجود نه دې.كوم چې محكمى عنه جوړ كړې شی .په خلاف د [أنا أختار]ځكه چې دا لفظ د موجوده حالت حكايت كيداې شی .ځكه چې اختيارد زړه عمل دې.نوپه ژبه باندې ذكركول د زړه د خبرې د وجود حكايت كيداې شی .

## درې ځله [إختاری] وئيل اوپه جواب كې د درې واړوقبلول

**وَلَوْقَالَ لَهَا: اِخْتَارِيْ اِخْتَارِيْ اِخْتَارِيْ** اوكه ښځې ته ئې اووئيل.اختيار كړه ته،اختيار كړه ته،اختيار كړه ته **فَقَالَتْ: قَدْ اخْتَرْتُ الْأُولٰى أَوِالْوُسْطٰى أَوِالْأَخِيْرَةَ** ښځې اووئيل.ما رومبې اختيار كړې دې.او منځنې،او آخرى **طَلُقَتْ ثَلَاثًا فِيْ قَوْلِ أَبِيْ حَنِيْفَةَ رَحْمَةُ اللّٰهِ تَعَالٰى عَلَيْهِ** نود امام صاحب رحمه الله د قول په بناء باندې به درې طلاقه واقع كيږی

**تشريح:-** كه سړی خپلې ښځې ته درې ځله د [إختاری] لفظ اووئيل.اودده ښځې په ځواب كې [اخترت الأولى والوسطى والأخيرة] اووئيل.① نودامام ابوحنيفه رحمه الله په نيزدرې طلاقه واقع شول.او خاوند نه د نيت محتاج دې.اونه د نفس د لفظ ورته اړتيا شته.② اوصاحبينو رحمهما الله فرمائي .چه يوطلاق واقع كيږی . او د خاوند د نيت اړتيا نشته.

**وَقَالَا: تَطْلُقُ وَاحِدَةً** () **وَلَايُحْتَاجُ إِلٰى نِيَّةِ الزَّوْجِ** **وَإِنَّمَا لَايُحْتَاجُ إِلٰى نِيَّةِ الزَّوْجِ لِدَلَالَةِ التَّكْرَارِ عَلَيْهِ** اود خاوند د نيت حاجت به نه وی .په طلاق باندې د تكرار دلالت په وجه **إِذِ الْاِخْتِيَارُ فِيْ حَقِّ الطَّلَاقِ هُوَالَّذِيْ يَتَكَرَّرُ** ځكه چې مكرر هم اختياروليې شی .كوم چې د طلاق په اړه كي وی

**تشريح:-** د خاوند نيت دعدم اړتيا دليل دا دې.چه دلته د [إختار] لفظ تكراربه طلاق باندې دلالت كوی .ځكه چې كوم اختيار مكرر وی .هغه د طلاق په اړه كي وی .اوهركله چې د طلاق په معنى باندې قرينه موجود ده.نود خاوند نيت ته څه اړتيا نشته.

**لَهُمَا إِنَّ ذِكْرَ الْأُولٰى، وَمَايَجْرِيْ مَجْرَاهُ إِنْ كَانَ لَايُفِيْدُ مِنْ حَيْثُ التَّرْتِيْبُ يُفِيْدُ مِنْ حَيْثُ الْإِفْرَادُ** د صاحبينو رحمهما الله دليل دادې.چه د اولى او ددې د قائم مقام ذكر اگرچه من حيث الترتيب مفيد نه دې.خود مفرد كيدو په حيثيت سره مفيد دې **فَيُعْتَبَرُ فِيْمَا يُفِيْدُ** نو په مفيد كي به معتبر وی

**تشريح:-** دصاحبينو رحمهما الله دليل دا دې.چه اولى وسطى اواخيرة د فرد مرتب نوم دې.ځكه چې اولى د اول مؤنث دې.اواول نوم دې د فرد سابق.او وسطى د اوسط مؤنث دې.اواوسط نوم دې د هغه فرد چې د هغه نه دومره عدد وړاندې وی .څومره چې ترې روستو وی .اواخيرة نوم دې د فرد لاحق.اودا محل محل د ترتب نه دې.نوترتب به لغوشی .اوافراد به پاته پاتې شی .يعنى دا كلام اگرچه مفيد د ترتيب نه دې.خومفيد د افرد

١) القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في فتح القدير(٤١٧\٣) وردالمحتار(٥٢١\٢) والهندية (٣٨٩\١) والبحر(٥٤٦\٣) نقلاً [عن القو]ل الراجح (٣٢٧\١)_



اړتيا دې.نوچه په كوم كي چې مفيد وی .د هغې اعتباربه كولې شی .نولكه چې ښځې اووئيل [اخترت التطليقة الأولى] ځكه چې ددې د كلام معنى چې [اخترت الأولى]دا ده.چه ما هغه ځيزاختياركړلو.كوم چې په لومړنى كلمه سره ماته حواله شوې وو.اوهغه يوطلاق وو.نويوطلاق به واقع شی .

**وَلَهُ أَنَّ هٰذَا وَصْفٌ لَغْوٌ** اود امام صاحب رحمه الله دليل دادې.چه دا وصف لغو دې **لِأَنَّ الْمُجْتَمِعَ فِي الْمِلْكِ** ځكه (هغه درې طلاقونه) كوم چې په ملك كي جمع دی **لَاتَرْتِيْبَ فِيْهِ كَالْمُجْتَمِعِ فِي الْمَكَانِ**،په هغې كي هيڅ ترتيب نشته.لكه څنگه چې په مجتمع فى المكان كي ( هيڅ ترتيب نشته). **وَالْكَلَامُ لِلتَّرْتِيْبِ** او كلام د ترتيب لپاره دې **وَالْإِفْرَادُ مِنْ ضَرُوْرَاتِهِ**،او افراد ددې د لوازماتو څخه دی **فَإِذَا لَغَا فِيْ حَقِّ الْأَصْلِ** نو كله چې د اصل په حق كي لغو شو **لَغَا فِيْ حَقِّ الْبِنَاءِ** نود بناء په حق كي به هم لغو وی

**تشريح:-** امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائي .چه دا وصف يعنى اولى وسطى اواخيرة لغو دې.ځكه چې درې طلاقه كوم چې د خاوند په ملكيت كي وی .په هغې كي ترتيب نه وی .لكه څنگه چې په يوكوركي ډيرخلگ راجع شوی وی .نوپه هغوی كي څه ترتيب نه وی .دهغوی په اړه كي اول اوآخرنشی وئيلې.اودا قاعده ده.چه هرهغه ځيزچه په هغې كي ترتيب نه وی .نو په هغې كي به هغه كلام لغووی .كوم چې د ترتيب لپاره وی .اودلته اولى وسطى اواخيره د ترتيب لپاره دی .اوهركله چې لفظ د ترتيب په اعتبارسره لغو شو.نود افرادوپه لحاظ سره به هم لغو وی .ځكه چې په دې كي ترتيب اصل دې.اوافراد ددې د لوازماتوڅنی دی .نوچه د اصل په حق كي لغو شی .نوكوم ځيزچه په اصل مبنى وی .د هغې په حق كي به هم لغو وی .اوچه د دواړو په حق كي لغو شو.نود ښځې قول چې [اخترت] پاته پاتې شو.اوكه د سړی د درې ځله [إختاری] په ځواب كي دا ښځه [اخترت] اووائى .نودرې طلاقه به واقع كيږی .نودغه ډول به دلته هم درې واړه واقع كيږی .

**وَلَوْقَالَتْ اخْتَرْتُ اخْتِيَارَةً** اوكه ښځې اووئيل،اخترت اختيارةً **فَهِيَ ثَلَاثٌ فِيْ قَوْلِهِمْ جَمِيْعًا** نودا به بالاتفاق درې وی **لِأَنَّهَا لِلْمَرَّةِ** ځكه چې ( لفظ د اختيارة) د مرة لپاره ده **فَصَارَكَمَا إِذَا صَرَّحَتْ بِهَا** نو داسې شوه. لكه چې كله ئې ( د لفظ مرة) صراحت كړې وی . **وَلِأَنَّ الْاِخْتِيَارَةَ لِلتَّأْكِيْدِ** او ځكه چې اختيارة د تاكيد لپاره دې **وَبِدُوْنِ التَّأْكِيْدِ تَقَعُ الثَّلَاثُ فَمَعَ التَّأْكِيْدِ أَوْلٰى** اود تاكيد نه بغير درې واقع كيږی .نو تاكيد سره به هم په درجه اولى درې واقع كيږی

**تشريح:-** دوهم صورت دا دې.چه ښځې د درې ځله [إختاری] په ځواب كي [اخترت إختيارة] اووئيل.نوپه اتفاق سره درې طلاقه واقع كيږی .① دليل دا دې.چه په [إختيارة] كي تاء د يوځل لپاره ده.نودا داسې شوه.لكه چې دې اووائى .[اخترت نفسی مرة] يعنى ما يوځل اختياركړې دې.اوپه دې كلام سره درې طلاقه واقع كيږی .② دوهم دليل دا دې.چه لفظ د [إختيارة] د تاكيد لپاره وی .اوبغيرد تاكيده درې واقع كيږی . نو د تاكيدپه صورت كي خوبه خامخا درې طلاقه واقع كيږی .

[@] [الكافا إختارت] نه ديواعتراض ځواب كوی .اعتراض دا دې.چه په دې وخت كي به حكم د تفويض طلاق مطابق نه وی .ځكه چې ښځې ته اختيارحواله شوې دې.اولفظ د [إختار] د بينونت فائده وركوی .د رجعت فائده نه وركوی .ځواب دا دې.چه دا داسې ده.لكه چې ښځې د عدت نه روسته اختياركړې دې. اودعدت نه روسته بينونت ثابتيږی .نوحكم د تفويض طلاق مطابق شو.

**وَلَوْقَالَتْ قَدْ طَلَّقْتُ نَفْسِيْ** اوكه ښځې اووئيل.ما پخپل ځان باندې طلاق واقع كړې دې **أَوِاخْتَرْتُ نَفْسِيْ بِتَطْلِيْقَةٍ**.يا ما خپل ځان اختيار كړې دې.په يو طلاق سره **فَهِيَ وَاحِدَةٌ يَمْلِكُ الرَّجْعَةَ** نودا يو دې.د رجعت مالك به وی **لِأَنَّ هٰذَا اللَّفْظَ يُوْجِبُ الْاِنْطِلَاقَ بَعْدَ انْقِضَاءِ الْعِدَّةِ**،ځكه چې دا لفظ وقوع د طلاق واجبوی .د عدت تيريدلو نه روسته **فَكَأَنَّهَا اخْتَارَتْ نَفْسَهَا بَعْدَ الْعِدَّةِ** نو گويا چې خپل ځان ئې دعدت نه روسته اختيار كړو.

تشریح:-دهدایه شارحینو رحمهم الله په دې موقع فرمائیلی دی .چه[یملك رجعة] په عبارت کې غلطی ده.دکاتب نه سهو شوې ده.ځکه چې ښځې دتفویض په حکم سره تصرف کړې دې.اوتفویض دطلاق بائن سره وی .ځکه چې په لفظ د[اختار]سره حواله کول دکنایه الفاظ دی .اوپه کنایاتوسره طلاق بائن واقع کیږی .نوښځه په خپل ځان باندې صرف طلاق بائن واقع کولې شي .صحیح روایت دا دې.چه [فهی واحدة ولا یملك الرجعة]ځکه چې د مبسوط،جامع صغیراوزیادات په ټولونسخوکې هم دغه ډول دی .

**د [أمرك بيدك في تطليقة يا إختارى تطليقة] حكم**

وَإِنْ قَالَ لَهَا أَمْرُكِ بِيَدِكِ فِي تَطْلِيقَةٍ اوکه سړی خپلې ښځې ته اوونیل.د طلاق ور کاوه په معامله کې ستا معامله ستا په لاس کې ده أَوِ اخْتَارِي تَطْلِيقَةً یا ته طلاق اختیار کړه فَاخْتَارَتْ نَفْسَهَا بیا دې خپل نفس اختیار کړو فَهِيَ وَاحِدَةٌ يَمْلِكُ الرَّجْعَةَ .نو یو دې.د رجعت مالك به وی

تشریح:- چاخپلې ښځې ته په [أمرك بيدك في تطليقة يا إختارى تطليقة] سره اختیارورکړلو.اوښځې اختیار واخستلو.نوپه یوطلاق رجعی سره به طلاقه وی .

لِأَنَّهُ جَعَلَ لَهَا الِاخْتِيَارَ لَكِنْ بِتَطْلِيقَةٍ ځکه چې ده ښځې ته اختیار ورکړو.خو تطلیقه سره وَهِيَ مُعَقِّبَةٌ لِلرَّجْعَةِ بِالنَّصِّ اود تطلیقه نه روسته رجعت وی .

حل اللغة: ① معقبة: رستو راوتلونکې]

تشریح:- ځکه چې ښځې ته په تطلیقة سره اختیارملاؤ شوې دې. اوکه په لفظ د تطلیقة سره طلاق ورکړې شی .نوطلاق رجعی واقع کیږی .نودلته به هم طلاق رجعی واقع کیږی .والله اعلم بالصواب.

**د خاوند نه د درې طلاقوتفویض اودښځې یوطلاق قبلول**

فصل:في الأمر باليد: ( دا) فصل د امر بالید ( په بیان کې ) دې وَإِنْ قَالَ لَهَا: أَمْرُكِ بِيَدِكِ يَنْوِي ثَلَاثًا اوکه ( سړی ) ښځې ته اوونیل.ستا معامله ستا په لاس کې ده.په داسې حال کې چې د دریو نیت کوی فَقَالَتْ: قَدْ اخْتَرْتُ نَفْسِي بِوَاحِدَةٍ فَهِيَ ثَلَاثٌ بیا ښځې اوونیل.چه ما خپل ځان په یو( ځل) سره اختیار کړو.نو دا درې دی

تشریح:- صورت د مسئلې دا دې.چه خاوند خپلې ښځې ته اوونیل.[أمرك بيدك]اوهغه نیت د دریوطلاقو کړې وو.اوښځې اوونیل.چه [إخترت نفسى بواحدة]نودرې طلاقه واقع کیږی .

لِأَنَّ الِاخْتِيَارَ يَصْلُحُ جَوَابًا لِلْأَمْرِ بِالْيَدِ ځکه چې اختیار د امربالید ځواب جوړولو صلاحیت لری لِكَوْنِهِ تَمْلِيكًا كَالتَّخْيِيرِ ځکه چې امر بالید د تخییر پشان تملیك دې وَالْوَاحِدَةُ صِفَةٌ لِلِاخْتِيَارَةِ او واحدة د اختیارة صفت دې فَصَارَ كَأَنَّهَا قَالَتْ: اخْتَرْتُ نَفْسِي بِمَرَّةٍ وَاحِدَةٍ نو شو.ګویا چې ده اوونیل.ما اختیار کړلو خپل ځان یو ځل وَبِذَلِكَ يَقَعُ الثَّلَاثُ او په دې سره درې واقع کیږی .

تشریح:- دلیل دا دې چې لفظ د اختارپه امربالید ځواب کیداې شی .لکه څنګه لفظ د تخییرپه مالك جوړیدو باندې دلالت کوی . نو دغه ډول امربالید هم د مالك جوړوپه معنی باندې دلالت کوی .نودا دواړه الفاظ په قوت اوضعف کې برابردی .نوځکه لفظ د اختار د امربالیدځواب کیداې شی .

په دریو باندې ځکه دلالت کوی چې واحدة د اختیارة محذوف صفت دې.لکه چې ښځې اوونیل. [إخترت نفسى بإختيارة واحدة يعنى بمرة واحدة] نوپه دې الفاظوسره درې طلاقه واقع کیږی .نودغه ډول دلته هم درې طلاقه واقع کیږی .

**د [أمرك بيدك]په جواب کې د [طلقت نفسى بواحدة]حکم**



وَلَوْ قَالَتْ: قَدْ طَلَّقْتُ نَفْسِي بِوَاحِدَةٍ اوکه وې وئیل.چه طلاق ورکړو ما خپل ځان ته په یو سره أَوِ اخْتَرْتُ نَفْسِي بِتَطْلِيقَةٍ یا اختیار کړو.ما خپل ځان،تطلیقة سره نودا یو بائنه ده فَهِيَ وَاحِدَةٌ بَائِنَةٌ

تشریح:- مسئله دا ده.که ښځې د [أمرك بيدك] په ځواب کې اوونیل.چه [طلقت نفسى بواحدة يا إخترت نفسى بتطليقة] نوپه دې باندې یوطلاق بائن واقع کیږی .

لِأَنَّ الْوَاحِدَةَ نَعْتٌ لِمَصْدَرٍ مَحْذُوفٍ،ځکه چې واحدة دمصدر محذوف صفت دې وَهُوَ فِي الْأُولَى الِاخْتِيَارَةُ او هغه ( مصدر) په رومبی ( صورت) کې اختیارة دې وَفِي الثَّانِيَةِ التَّطْلِيقَةُ او په دوهم ( صورت) کې تطلیقة دې

تشریح:-دلیل دادې.چه واحدة د محذوف مصدرصفت دې.نود وړاندینی فعل پشان به مصدرمقدرګنړلې شی .په وړاندینۍ مسئله کې یعنې [إخترت نفسى بواحدة] کې اختیارةً مقدر ګنړلې شی .اوپه دویمه مسئله یعنی [طلقت نفسى بواحدة] کې تطلیقة محذوف دې.

إِلَّا أَنَّهَا تَكُونُ بَائِنَةً .خودا چې هغه به بائنه وی لِأَنَّ التَّفْوِيضَ فِي الْبَائِنِ ضَرُورَةُ مِلْكِهَا أَمْرَهَا،ځکه چې تفویض په بائنه کې ( حاصل) دې.ددې ښځې د خپلې معاملې مالك کیدلو په وجه وَكَلَامُهَا خَرَجَ جَوَابًا لَهُ اود ښځې کلام د سړی ( دکلام ) په ځواب کې وتلې دې فَتَصِيرُ الصِّفَةُ الْمَذْكُورَةُ فِي التَّفْوِيضِ مَذْكُورَةً فِي الْإِيقَاعِ نوکوم صفت چې په تفویض کې ذکر دې.په ایقاع کې به هم ذکر وی

حل اللغة: ① التفويض: سپارل ② الايقاع: واقع کول]

تشریح:-اوس پاتې شوه دا خبره چې په دې الفاظوطلاق بائن ولې واقع کیږی ؟نوددې وجه دا ده.چه [أمرك بيدك] د کنایه الفاظ دی .اود کنایه په الفاظوسره طلاق بائن واقع کیږی .سوا د هغه درې الفاظونه کوم چې وړاندې تیرشول.نوثابته شوه.چه خاوند ورته طلاق بائن حواله کړې دې.ځکه چې خاوند هغه د خپلې معاملې مالکه جوړه کړه.اومالکه جوړید د بینونیت تقاضا کوی . لنډیز دا چې ښځې ته طلاق بائن حواله کړې شوې دې.اود ښځې کلام دسړی د کلام ځواب واقع شوې دې.نود (بینونت) کوم صفت چې په تفویض کې مذکور دې.هم هغه به د طلاق په واقع کولوکې هم ذکروی .چه د ښځې کلام د:سړی د کلام مطابق شی .

وَإِنَّمَا تَصِحُّ نِيَّةُ الثَّلَاثِ فِي قَوْلِهِ: أَمْرُكِ بِيَدِكِ او ستا قول امرك بيدك کې د دریو نیت صحیح دې لِأَنَّهُ يَحْتَمِلُ الْعُمُومَ وَالْخُصُوصَ ځکه چې دا د عموم خصوص احتمال لری وَنِيَّةُ الثَّلَاثِ نِيَّةُ التَّعْمِيمِ اود دریو نیت د تعمیم نیت دې.

تشریح:-صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی .چه په [أمرك بيدك] کې د درې طلاقونیت صحیح دې.اوپه [اختارى] کې نه دې صحیح.ځکه چې امربالید دعموم اوخصوص دواړو احتمال لری .شیخ الاسلام فرمائیلی دی . چې امراسم عام دې.چه هرڅیزته ګډ دې.الله تعالی فرمائیلی دی ((وَالْأَمْرُ يَوْمَئِذٍ لِلَّهِ)) اوددې نه واړه شیان (څیزونه ) مراد دی .نوهرکله چې نې په دې سره دطلاق نیت اوکړلو.نودا کنایه شوه.د [طلاقك بيدك] اوطلاق مصدر دې د عموم اوخصوص احتمال لری .نود دریو نیت دتعمیم نیت دې.

بِخِلَافِ قَوْلِهِ: اخْتَارِي په خلاف دده د قول، اختاری لِأَنَّهُ لَا يَحْتَمِلُ الْعُمُومَ ځکه چې هغه د عموم احتمال نه لری وَقَدْ حَقَّقْنَاهُ مِنْ قَبْلُ او موږ دا وړاندې ثابت کړی دی .

تشریح:- په خلاف د [اختارى] ځکه چې دا د عموم احتمال نه لری .ددې تفصیل په [فصل في الإختيار] کې تیر شوې دې.

①وړاندې ذکرشوی دی .چه د [اختارى] په ځواب کې که [إخترت نفسى بتطليقة] اوونیل.نودمصنف رحمه الله دبیان مطابق په دې باندې طلاق رجعی واقع کیږی .دا د کاتب سهوده.ددې دلیل دا دې.چه په ذکرشوې مسئله کې نې فرمائیلی دی .چه د [أمرك بيدك] په ځواب کې په [إخترت نفسى بواحدة] سره یوطلاق بائن واقع کیږی

.نوددي مسئلي نه معلومه شوه.چه په لومړنی مسئله کښي به هم طلاق بائن واقع کيږي .ځکه چې دې دوارو مسئلوکي د مصنف رحمه الله په نيزخه توپير نشته.والله اعلم بالصواب.

## د[أمرك بيدك اليوم وبعدغد] حكم

وَلَوْقَالَ لَهَا: أَمْرُكِ بِيَدِكِ الْيَوْمَ وَبَعْدَ غَدٍ اوكه ښځي ته ئې اوونيل.ستا معامله ستا په لاس کي ده.نن او سبا پس. لَمْ يَدْخُلْ فِيهِ اللَّيْلُ نو په دې اختيار كي به شپه داخل نه وی وَإِنْ رَدَّتِ الْأَمْرَ فِي يَوْمِهَا او كه په يوم (ورځ) كي ئې معامله رد كړله بَطَلَ أَمْرُ ذٰلِكَ الْيَوْمِ نو ددې ورځې معامله باطل شوه وَكَانَ الْأَمْرُ بِيَدِهَا بَعْدَ غَدٍ او د سبا راروانې ورځې) معامله به دده په لاس کي پاته پاتې وی

**تشريح:**- صورت د مسئلې دادې.كه سړی خپلې ښځې ته اوونيل.چه[أمرك بيدك اليوم وبعدغد] نو كوم شپه چې ددې ورځې نه روسته راځی .په دې اختيار كي به نه داخليږی .نوكه ښځې خپل ځان په شپه كي اختيار كړو.نو طلاق به نه واقع كيږی .اوكه ښځې نن ورځ اختيار رد كړو.نو صرف د نن ورځې ،امر باليد، به رد كيږی .او صباله ( راروانې ورځې ) نه روسته اختيار به دده په قبضه كي پاته وی .

په عبارت كي دوې [دوه] دعوې دی .① اول دا چې په دې الفاظو سره اختيار ور كاوه كي هغه شپه كومه چې د نن ورځې نه روسته ده.هغه به په دې اختيار كي نه شامليږی .② دويمه دعوه داده.چه ښځې به نن ورځ كي د ،امر باليد، رد كاوه نه روسته د ،بعد الغد،( يعنی د سهار نه روسته راتلونكې ورځ) امر باليد ئې نه دې رد كړي.

لِأَنَّهُ صَرَّحَ بِذِكْرِ وَقْتَيْنِ بَيْنَهُمَا وَقْتٌ مِنْ جِنْسِهِمَا ځكه چې دې سړی داسې دوې [دوه] وختونه صراحتاً ذكر كړي دی .چه ددې په منځ كي ددې دوارو هم جنس وخت دې لَمْ يَتَنَاوَلْهُ الْأَمْرُ چې هغې ته امر باليد ګډ نه دې إِذْ ذِكْرُ الْيَوْمِ بِعِبَارَةِ الْفَرْدِ لَا يَتَنَاوَلُ اللَّيْلَ ځكه چې د يوم ذكر عبارت فرد سره شپې ته نه شامليږی فَكَانَا أَمْرَيْنِ نو دوې [دوه] امره شو فَبِرَدِّ أَحَدِهِمَا لَا يَرْتَدُّ الْآخَرُ نو په دې دوارو كي د يو په رد كاوه سره به دوهم نه رد كيږی

**حل اللغة*** ① يتناول:شامليږی ② الليل:شپه ]

**تشريح:**- د ړومبۍ دعوې دليل دادې.چه خاوند چونكه يوم ( نن ورځ) مفرد لفظ سره ذكر كړې دې.په دې وجه به دا اختيارانو ګډ نه وی .د دويمې دعوې دليل دادې.چه دې سړی په صراحت سره دوې [دوه] وختونه ذكر كړی دی .يعنی ،يوم، او،بعد غد،او ددې دوارو په منځ كي ددې هم جنس يو وخت داسې دې.چه هغې نه امر باليد ګډ نه دې.يعنی ،غد،نودا مستقل دوې [دوه] امرونه دی .يو د نن ورځې امرباليد، او دوهم د ،بعدالغد، او د احدالامرين په رد كاوه سره آخر نه رد كيږی .نو دلته كي هم د امر باليد رد كاوه سره د بعدالغد امر نه رد كيږی .

وَقَالَ زُفَرُ رَحِمَهُ اللّٰهُ: هُمَا أَمْرٌ وَاحِدٌ بِمَنْزِلَةِ قَوْلِهِ: أَنْتِ طَالِقٌ الْيَوْمَ وَبَعْدَ غَدٍ.او امام زفر رحمه الله فرمائی .چه دا دواړه امر واحد دی .دده د قول، انت طالق اليوم وبعد غد ، په مرتبه كي

**تشريح:**- امام زفر رحمه الله فرمائی .چه دواړه امرونه، امر واحد دی .نو كه د نن ورځې امر باليد رد كړې شو.نود ،بعدغد، به هم پاته نه پاتې كيږی .اودا د ،انت طالق اليوم بعد غد، په مرتبه كي دې.

قُلْنَا: الطَّلَاقُ لَا يَحْتَمِلُ التَّأْقِيتَ مونږ ځواب وركوو.چه طلاق د وخت د تعين احتمال نه لری وَالْأَمْرُ بِالْيَدِ يَحْتَمِلُهُ او امر باليد ددې احتمال لری فَيُوَقَّتُ الْأَمْرُ بِالْأَوَّلِ وَجَعَلَ الثَّانِي أَمْرًا مُبْتَدَأً نو متعين كولې به شی .امر د ړومبی سره او دوهم به مستقل امر ګرځولې شی .

مونږ د ارخه ځواب دادې.چه امر باليد طلاق باندې قياس كول صحيح نه دی .ځكه چې طلاق د تعين احتمال نه لری .لكه چې يوه ښځه په نن ورځ كي طلاقه كړې شی .نو هغه به صباله او د صباله



نه روسته هم مطلقه وی .او امر باليد د تعين احتمال لری .لكه چې په ، امرك بيدك اليوم و بعد غد، كي امر متعين دې. ړومبې وخت يعنی يوم جلا امر،او دوهم وخت ( بعد غد) مستقل دوهم امر اوګرځولې شی .نو تقديری عبارت به داسې شی .،امرك بيدك اليوم و امرك بيدك بعد غد،

## د[أمرك بيدك اليوم وغدا] حكم

وَلَوْقَالَ أَمْرُكِ بِيَدِكِ الْيَوْمَ وَغَدًا اوكه وې ونيل.چه ستا معامله ستا په لاس كي ده.نن او صبا يَدْخُلُ اللَّيْلُ فِي ذٰلِكَ نو په دې كي به شپه نه داخليږی فَإِنْ رَدَّتِ الْأَمْرَ فِي يَوْمِهَا او كه ښځې نن ورځ خپل امر باليد رد كړو لَا يَبْقَى الْأَمْرُ فِي يَدِهَا فِي غَدٍ نو صباله ورځ به ددې په قبضه كي امر پاته نه پاتې كيږی

**تشريح:**- مسئله كه سړی خپلې ښځې ته اوونيل.چه [أمرك بيدك اليوم وغدا] نوپه دې امرباليدكي د نن او سهار ورځ په مينځ كي شپه هم داخله ده.اوكه په نن ورځ ئې امرباليد رد كړلو.نوپه سهار ورځ كي هم امرباليد پاته پاتې نشو.

لِأَنَّ هٰذَا أَمْرٌ وَاحِدٌ ځكه چې دا خو يو امر دې لِأَنَّهُ لَمْ يَتَخَلَّلْ بَيْنَ الْوَقْتَيْنِ الْمَذْكُورَيْنِ وَقْتٌ مِنْ جِنْسِهِمَا لَمْ يَتَنَاوَلْهُ الْكَلَامُ ځكه چې د ذكر شوی وختونو په منځ كي ددې د جنس داسې هيڅ وخت فاصل نشو.چه دې ته كلام ( امر باليد) ته ګډ نه وی وَقَدْ يَهْجُمُ اللَّيْلُ او حال دادې.چه كله شپه راځی وَمَجْلِسُ الْمَشُورَةِ لَا يَنْقَطِعُ اود مشورې مجلس نه منقطع كيږی فَصَارَ كَمَا إِذَا قَالَ: أَمْرُكِ بِيَدِكِ فِي يَوْمَيْنِ نودا داسې شوه.لكه چې ده اوونيل.چه ستا معامله ستا په لاس كي دوې [دوه] ورځې ده

**حل اللغة*** ① يتناول: شامليږی ② يهجم الليل: شپه راځی ③ ينقطع: ختميږی ]

**تشريح:**-دليل دا دې.چه دا يوامرباليد دې.اوددې دواړو ذكرشوو وختونوپه مينځ كي داسې وخت فاصل نشته.كوم چې ددې دجنس ځنی وی .اوامرباليد هغې ته ګډ نه وی .حالانكه كله مجلس د مشورې ختميږی نه.اوشپه راشی .نودا داسې شوه.لكه چې دې اوونی .[أمرك بيدك في يومين] نوثابته شوه.چه په نن او سهار ورځ كي يوامرباليد دې.اوچه يوامرباليد كي يوه برخه رد كړې شی .نودويمه برخه پاته نه پاتې كيږی .

وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ ( په نوادركي ) د ابوحنيفه رحمه الله نه دا روايت هم دې أَنَّهَا إِذَا رَدَّتِ الْأَمْرَ فِي الْيَوْمِ كه ښځې نن ورځ خپل امر باليد رد كړو لَهَا أَنْ تَخْتَارَ نَفْسَهَا غَدًا نو دې ته اختيار دې.چه صباله ورځ خپل ځان اختيار كړی لِأَنَّهَا لَا تَمْلِكُ رَدَّ الْأَمْرِ كَمَا لَا تَمْلِكُ رَدَّ الْإِيقَاعِ ځكه چې ښځه د امر باليد رد كاوه مالكه نه ده.لكه څنګه چې دا د ايقاع طلاق رد كاوه مالكه نه ده

**تشريح:**-دامام ابوحنيفه رحمه الله نه يوروايت دې.چه په نن ورځ كي امرباليد رد كولوسره د صبانۍ ورځې امرباليد نه ختميږی .بلكه په سهار روځ كي خپل نفس مختاره كولې شی .دليل دا دې.چه لكه څنګه ښځه د ايقاع الطلاق قدرت نه لری .نودغه ډول د امرباليد د رد كولواختيارهم نه لری .يعنی كه خاوند ښځې ته [أنت طالق] اوونيل.نوطلاق واقع كيږی .كه دا ئې قبلوی اوكه نه.دغه ډول په [أمرك بيدك] ونيلوسره هم د ښځې لپاره امرباليد ثابتيږی .اګرچه هغه دا قبول نكړی .نوهركله چې د ښځې په رد كولوسره امرباليد رد نشو.نوهغه خپل نفس ته اختيار وركولې شی .

وَجْهُ الظَّاهِرِ أَنَّهَا إِذَا اخْتَارَتْ نَفْسَهَا الْيَوْمَ د ظاهرالروايت وجه داده.چه ښځې كله نن ورځ خپل نفس اختيار كړو لَا يَبْقَى لَهَا الْخِيَارُ فِي الْغَدِ نو ددې لپاره به صباله ورځ اختيار پاته نه پاتې كيږی فَكَذَا إِذَا اخْتَارَتْ زَوْجَهَا بِرَدِّ الْأَمْرِ نو هم دغه ډول كله چې دې د امر باليد رد كاوه په ذريعه خپل خاوند اختيار كړو لِأَنَّ الْمُخَيَّرَ بَيْنَ الشَّيْئَيْنِ لَا يَمْلِكُ إِلَّا اخْتِيَارَ أَحَدِهِمَا ځكه چې كوم سړی ته چې د دوې [دوه] څيزونو په منځ كي اختيار وركولې شی .هغه په دې دواړو كي صرف د يو اختيارولو مالك دې

تشریح:-دظاهرروایت وجه دا ده.چه ښځې کله نن ورځ خپل نفس ته اختیار ورکړلو.نوبه راروان سهار دې لپاره اختیار پاته نه پاتې کیږی .نودغه شان چې دا په نن ورځ کې امربالید رد کړی .اوخپل خاوند اختیار کړی نود سهار لپاره امربالید پاته پاتې نشو.دلیل دا دې.چه کوم کس ته په دووخیزونوکې اختیار ورکړې شوې وی .هغه په هغې کې صرف یوغوره کولې شی .دواړه نشی .

وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللّٰهُ أَنَّهُ إِذَا قَالَ: أَمْرُكِ بِيَدِكِ الْيَوْمَ وَأَمْرُكِ بِيَدِكِ غَدًا اود ابویوسف رحمه الله نه روایت دې. چې کله اووائی ، امرك بیدك الیوم، و امرك بیدك غداً أَنَّهُمَا أَمْرَانِ نو دا دوې [دوه] امر بالید دی لِمَا أَنَّهُ ذَكَرَ لِكُلِّ وَقْتٍ خَبَرًا بِخِلَافِ مَا تَقَدَّمَ خکه چې ده د هر وخت لپاره جلا خبر ذکرکړو.په خلاف د تیر شوی کلام.

تشریح:-دامام ابویوسف رحمه الله نه روایت دې.که سړی [أمرك بیدك الیوم اوأمرك بیدك غدا] اووئیل.نودوې [دوه] امره بالیدشول.خکه چې دا دهروخت لپاره جلا جلا خبردې.په خلاف د ماقبل خکه چې امرواحد دې.نوخکه په اختیارکې تکرار موجود نشو.نوتجدد د امرهم موجود نشو.
[۱]دامام ابویوسف رحمه الله دا روایت شمس الائمه رحمه الله صحیح ګرخولې دې.اوقاضی خان دې ته اصل روایت وئیلې دې.اودچا اختلاف په کې هم ذکرنه دې.والله اعلم

## د [أمرك بیدك یوم یقدم فلان] حکم

وَإِنْ قَالَ: أَمْرُكِ بِيَدِكِ يَوْمَ يَقْدَمُ فُلَانٌ اوکه وې وئیل.ستا معامله ستا په لاس کې ده.په کومه ورځ چې فلانې راشی فَقَدِمَ فُلَانٌ نو فلانې راغی فَلَمْ تَعْلَمْ بِقُدُومِهِ حَتَّى جَنَّ اللَّيْلُ او ښځې ته د هغه د راتلو علم اونشو.تردې چې د شپې چاغه خوره شوه فَلَا خِيَارَ لَهَا نو ددې لپاره خیار نشته

حل اللغة: ① یقدم:واپس راشی د سفر نه ② جن: خوره شوه]

تشریح:- که خاوند خپلې ښځې ته اووئیل.[أمرك بیدك یوم یقدم فلان] بیا هغه فلانې کس راغلو.اوښځې ته دهغه د راتلوعلم اونشی .تردې چې شپه شی .نوپه دې صورت کې د ښځې لپاره اختیارپاته پاتې نشو.

لِأَنَّ الْأَمْرَ بِالْيَدِ مِمَّا يَمْتَدُّ فَيُحْمَلُ الْيَوْمُ الْمَقْرُونُ بِهِ عَلَى بَيَاضِ النَّهَارِ وَقَدْ حَقَّقْنَاهُ مِنْ قَبْلُ فَيَتَوَقَّتُ بِهِ خکه چې ( امر بالید) بیاض نهار سره موقت دې ثُمَّ يَنْقَضِي بِانْقِضَاءِ وَقْتِهِ بیا د بیاض نهار په تیریدلو سره به ختمیږی .

تشریح:-دلیل دا دې.چه امربالید فعل ممتد دې.اووړاندې تیرشوی دی .که یوم د فعل معتد سره متصل شی .نود یوم څخه به دورخې رڼرا مراد وی .مطلق وخت به نه وی مراد.نودلته به امربالید هم په روخ پورې محدود وی .اوددې په تیریدو سره به امربالید ختمیږی ..

## ښځې ته د اختیارملاویدونه روسته د اختیارد وخت بیان

وَإِذَا جَعَلَ أَمْرَهَا بِيَدِهَا اوکله نې چې د ښځې معامله ددې په لاس کې ورکړله أَوْ خَيَّرَهَا یا نې دې ته ( دطلاق) اختیار ورکړو فَمَكَثَتْ يَوْمًا لَمْ تَقُمْ بیا هغه یوه ورځ ایساره شوه.او اونه دریدله فَالْأَمْرُ فِي يَدِهَا مَا لَمْ تَأْخُذْ فِي عَمَلٍ آخَرَ نو امر به ددې په لاس کې پاتې وی .ترکومه پورې چې دا بل څه کار پیل نکړی

تشریح:- مسئله دا ده.که د ښځې معامله هم د هغې په لاس کې ورکړې شی .(یعنی هغې ته حواله شی )یا نې ورته [أمرك بیدك] اووئیل.یا نې ورته د طلاق اختیار ورکړلو.مثلاً [اختاری نفسك] نې ورته اووئیل. بیا هغه ښځه هم په هغه مجلس کې یوه ورځ ایساره شوه.نو ددې معامله هم ددې په لاس کې ده.یعنی په مجلس کې ورته اختیار پاته دې.ترڅوچه هغه دوهم کارنه وی پیل کړی.

لِأَنَّ هَذَا تَمْلِيكُ التَّطْلِيقِ مِنْهَا خکه چې دا ددې ښځې د تطلیق مالك جوړول دی لِأَنَّ الْمَالِكَ مَنْ يَتَصَرَّفُ بِرَأْيِ نَفْسِهِ



خکه مالك هغه سړې دې.څوك چې پخپلې رائې سره تصرف اوکړی وَهِيَ بِهَذِهِ الصِّفَةِ اودا ښځه هم په صفت سره ده وَالتَّمْلِيكُ يَقْتَصِرُ عَلَى الْمَجْلِسِ او تملیك په مجلس باندې منحصر پاتې وی وَقَدْ بَيَّنَّاهُ مِنْ قَبْلُ اوموږ دا دړاندې بیان کړی دی .

تشریح:-دلیل دا دې.چه دا امربالید په حقیقت کې ښځه دطلاق مالکه جوړول دی .خکه چې مالك هغه وی څوك چې په خپله خوښه تصرف کولې شی .اودا ښځه په دې صفت باندې موصوف ده.اوتملیکات په مجلس پورې خاص وی .نودلته به هم د مجلس اعتبار کولې شی .

## د اختیارپه ملاویدوکې په اختیارباندې د علم د مجلس اعتبار

ثُمَّ إِنْ كَانَتْ تَسْمَعُ بیا که دې ( ښځې) اوریدل يُعْتَبَرُ مَجْلِسُهَا ذَلِكَ نو ددې د مجلس اعتبار به کولای شی وَإِنْ كَانَتْ لَا تَسْمَعُ اوکه نه نې اوریدل ، فَمَجْلِسُ عِلْمِهَا وَبُلُوغِ الْخَبَرِ إِلَيْهَا نو ددې د مجلس علم یا ددې ارخ ته د خبر رسیدلو( مجلس) اعتبار به کولې شی

تشریح:- صورت د مسئلې دا دې.چه په کوم مجلس کې خاوند [أمرك بیدك] اووئیل.اوښځه په دغه مجلس کې موجود وی .نود هغې هم د دغه مجلس اعتبار به کولې شی .اوکه ښځه موجود نه وی .نوپه کوم مجلس کې چهښځې ته ددې علم اوشی .یا ورته خبر اورسی .نوهغه مجلس به معتبر وی .

لِأَنَّ هَذَا تَمْلِيكٌ فِيهِ مَعْنَى التَّعْلِيقِ خکه دا داسې تملیك دې.چه په دې کې د تعلیق معنی ده فَيَتَوَقَّفُ عَلَى مَا وَرَاءَ الْمَجْلِسِ نو په ما وراء د مجلس باندې به موقوف وی وَلَا يُعْتَبَرُ مَجْلِسُهُ لِأَنَّ التَّعْلِيقَ لَازِمٌ فِي حَقِّهِ

تشریح:- دلیل دا دې.چه [أمر بالید] داسې تملیك دې.چه په دې کې د تملیك معنی موجود ده.خکه چې د [أمرك بیدك] معنی ده.[إن أرت طلاقك فأنت طالق] اودا خبره معلومه شوې ده.چه تملیکات په مجلس پورې خاص وی .د مجلس نه سوا پورې به موقوف نه وی .اوتعلیقات د مجلس نه په سوا پورې موقوف وی .مثلاً [إن دخلت الدارفأنت طالق] د مجلس نه روسته سوا پورې موقوف دې.نود تملیك دمعنی تقاضا دا ده.چه امربالید په مجلس پورې خاص وو.اود تعلیق د معنی تقاضا دا ده.چه دمجلس پورې خاص نه وی .بلکه د مجلس نه په سوا باندې موقوف وی .نوچه څومره کیدای شی .په دې دواړو دلیلونو باندې د عمل کاوه لپاره امربالید دښځې په دوو حالتونوباندې حمل کړې شو.وئې فرمائیل.که ښځه د خاوند د [أمرك بیدك] په مجلس کې موجود وه.نودتملیك د معنی لحاظ به ساتلې شی .اوکه په دغه مجلس کې موجود نه وی .نود تعلیق د معنی خیال به ساتلې شی .اوامربالید به د مجلس نه سوا باندې موقوف کولې شی .
[۱]صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی .چه داختیار په پاته پاتې کیدو اونه پاتې کیدوکې د خاوند مجلس معتبر نه دې.که خاوند پاسیدلو.اوښځه ناسته وه.نوددې اختیار پاته دې.دلیل دا دې.چه په دغه وخت کې تعلیق د خاوند په حق کې لازم دې.هم دا وجه ده.چه دې په رجوع کاوه باندې قادر نه دې.(چه دخپلې خبرې نه رجوع اوکړی .چه زه تاته اختیار نه درکوم)

بِخِلَافِ الْبَيْعِ لِأَنَّهُ تَمْلِيكٌ مَحْضٌ خکه چې دا تملیك محض دې لَا يَشُوبُهُ التَّعْلِيقُ او په دې کې د تعلق شائبه هم نشته وَإِذَا اعْتُبِرَ مَجْلِسُهَا اوهرکله چې د ښځې د مجلس اعتبار اوکړې شو فَالْمَجْلِسُ تَارَةً يَتَبَدَّلُ بِالتَّحَوُّلِ نو مجلس کله په منتقل کیدلو سره بدلیږی . وَمَرَّةً بِالْأَخْذِ فِي عَمَلٍ آخَرَ كَمَا بَيَّنَّا فِي الْخِيَارِ او کله په بل څه کار پیل کاوه سره.لکه چې موږ دا د اختیار په بحث کې بیان کړی دی

حل اللغة: ① یشوب:شائبه مشابهت ② التحویل:ګرځول، منتقل کیدل]

تشریح:بیع ددې په خلاف ده.څکه چې دې کې د بائع اومشتری دواړو مجلس معتبر دې.په دواړوکې چې څوك هم پاسیدلو.اودبل د قبلولونه وړاندې ئې د خپلې خبرې نه رجوع اوکړله.نوجائزده.

۞بهرحال د ښځې مجلس معتبردې.اوپاتې شوه دا خبره چې دمجلس د بدلیدو صورت به څه وی . نو مصنف رحمه الله ددې دوې [دوه] صورتونه بیان کړی دی .① یودا چې د یوځائې نه بل ځائې ته لاړه شی ② دوهم دا چې بل کارشروع کړی .دا دواړه صورتونه په فصل فی الخیارکې بیان شوی دی .

وَتَخْرُجُ الْأَمْرُمِنْ يَدِهَا او د ښځې د لاس نه امر باليد اوځی بِمُجَرَّدِ الْقِيَامِ لِأَنَّهُ دَلِيلُ الْإِعْرَاضِ ، إِذِ الْقِيَامُ يُفَرِّقُ الرَّأْيَ، بِخِلَافِ مَا إِذَا مَكَثَتْ يَوْمًا لَمْ تَقُمْ وَلَمْ تَأْخُذْ فِي عَمَلٍ آخَرَ په خلاف د هغه صورت.کله چې دا یوه ورځ ایساره شوه.اونه دریدله.اونه ئې بل څه کار پيل کړو لِأَنَّ الْمَجْلِسَ قَدْ يَطُولُ ځکه چې مجلس کله اوګديږی . وَقَدْ يَقْصُرُ او کله لنډ وی فَيَبْقَى إِلَى أَنْ يُوجَدَ مَا يَقْطَعُهُ نو مجلس به پاته پاتې وی .ترهغه پورې چې هغه شی اوموندې شی .کوم چې دا قطع کړی أَوْمَا يَدُلُّ عَلَى الْإِعْرَاضِ یا په اعراض باندې دلالت اوکړی

حل اللغة* ① يطول: اوږديږی ② يقصر: کميږی ③ يقطع: کټ کيږی ]

تشريح:-صاحب دهدايه رحمه الله فرمائی .چه دمجلس نه په صرف اودريدو سره هم د ښځې اختيارباطليږی .ځکه چې دمجلس نه ودريدل د اعراض اوږدې کولو نښانه ده.اوددې امله هم چې ودريدل رائې جلا کوی .البته که ښځه پوره یوه ورځ په مجلس کې پاتې شی .نه اودریږی .اونه بل کارشروع کړی .نوددې اختيارنه باطليږی ۞دليل دا دې.چه مجلس کله اوږديږی .اوکله مختصروی .نودا اختياربه ترهغه وخته پورې پاته وی . ترڅو چې د مجلس ختمونکې یا د اعراض کولو نښانه نه وی موجود شوې.

وَقَوْلُهُ مَكَثَتْ يَوْمًا لَيْسَ لِلتَّقْدِيرِ بِهِ او دده قول،مکثت يوماً، دتقدير لپاره نه دې وَقَوْلُهُ مَالَمْ تَأْخُذْ فِي عَمَلٍ آخَرَ يُرَادُ بِهِ عَمَلٌ يُعْرَفُ أَنَّهُ قَطْعٌ لِمَا كَانَ فِيهِ لَامُطْلَقَ الْعَمَلِ او دده قول، مالم تاخذ فی عمل آخر، ددې نه مراد داسې عمل دې.چه ددې په اړه کې معلومه وی .چه دا ددې کار قاطع دې.په کوم کې چې دا لګيا وه.مطلق عمل ( مراد) نه دې.

تشريح:- د مصنف رحمه الله قول [مکثت يوما] نه تحديد مراد نه دې.بلکه که د يوې ورځې نه زياته ناسته وه.اودليل د اعراض هم موجود نشی .نواختياربه پاته وی .

۞اود مصنف رحمه الله قول چې [مالم تأخذ في عمل آخر] نه مطلق عمل مراد نه دې.بلکه هغه عمل مراد دې.چه د هغې نه د مجلس ختميدل معلوميږی .والله اعلم بالصواب.

## د ولاړې نه په کيناستود اختيارنه ختميدل

وَلَوْكَانَتْ قَائِمَةً فَجَلَسَتْ اوکه دا ولاړه وه.بيا کيناستله. فَهِيَ عَلَى خِيَارِهَا نودا پخپل اختيار باندې ده لِأَنَّهُ دَلِيلُ الْإِقْبَالِ ځکه چې کښينستل د متوجه کيدلو دليل دې فَإِنَّ الْقُعُودَ أَجْمَعُ لِلرَّأْيِ ځکه چې کښينستل رائې ښه جمع کوی

حل اللغة* ① الاقبال: راتګ ② القعود: کيناستل]

تشريح:- مسئله دا ده.که د امرباليد په وخت کې ولاړه وه.اوکيناستله.نواختيار به پاته وی .دليل دا دې.چه کښينستل د متوجه کيدو دليل دې.ځکه چې په ناسته سوچ کول د ولاړې په نسبت سره ښه کيږی .

وَكَذَا إِذَا كَانَتْ قَاعِدَةً او دغه ډول کله چې ناسته وی فَاتَّكَأَتْ أَوْمُتَّكِئَةً فَقَعَدَتْ بيا ئې تکيه ( ډډه) اولګوله.یا ئې تکيه لګولې وه بيا کيناستله لِأَنَّ هَذَا انْتِقَالٌ مِنْ جِلْسَةٍ إِلَى جِلْسَةٍ، ځکه چې دا د يو حالت نه دوهم حالت اړخ ته منتقل کيدل دی فَلَا يَكُونُ إِعْرَاضًا نو( دا) به اعراض نه وی كَمَا إِذَا كَانَتْ مُحْتَبِيَةً لکه کله ئې چې ګونډۍ او درولې وی .او ناسته وی فَتَرَبَّعَتْ بيا په پرلت کيناستله

حل اللغة* ① اعراض: ډډه کول ② متكئة: تکيه وهونکې]



تشريح:- دغه ډول که دا ناسته وی .اود اختيار ملاويدو نه روسته ئې ډډه اولګوله.یا ئې تکيه لګولې وه.اوداختيار ملاويدونه روسته کيناستله. نوپه دې صورت کې اختيارنه ختميږی .بلکه دهغې اختيارپاته دې.

۞دليل دا دې.چه دا د يوحالت نه بل حالت ته بدليدل دی .دې ته اعراض اوډډه کول نه وائی .اودا داسې ده.لکه چې دې ته داختيارملاويدو په وخت کې ئې دواړه ګونډۍ اودرولې وې.اوبيا ئې پرلتۍ باندې کيناستله. نوددې اختيارنه باطليږی .

قَالَ رضي الله عنه: هَذِهِ رِوَايَةُ الْجَامِعِ الصَّغِيرِ، وَذَكَرَفِي غَيْرِهِ فَكَانَ إِعْرَاضًا مصنف رحمه الله فرمائی .چه دا دجامع صغير روايت دې وذكر في غيره او ددې نه په علاوه کې ذکر دی أَنَّهَا إِذَا كَانَتْ قَاعِدَةً فَاتَّكَأَتْ لَاخِيَارَلَهَا چې دا( ښځه) کله ناسته وی .بيا ئې تکيه اولګوله.نو ددې لپاره خيار نشته لِأَنَّ الْإِتِّكَاءَ إِظْهَارُ التَّهَاوُنِ بِالْأَمْرِ ځکه چې تکيه لګول ددې امر نه بې پرواهی ښکاره کول دی فكان إعراضا نو( دا) تکيله لګول به اعراض وی وَالْأَوَّلُ هُوَ الْأَصَحُّ او اول زيات صحيح دې

حل اللغة* ① التهاون: سپکوالې ]

تشريح:- صاحب دهدايه رحمه الله فرمائی .چه داختيار پاته پاتې کيدو صورت دا دې.چه دا ناسته وی .اوبيا تکيه اووهی .دا د جامع صغيرروايت دې.ګنی د جامع صغيرنه علاوه د مبسوط روايت دا دې.که د امرباليد په وخت کې ناسته وه.اوبيا ئې تکيه اووهله.نوددې لپاره اختيار پاته نه دې.ځکه چې تکيه وهل امرباليد ته د التفات نه کولودليل دې.نوتکيه لګول اعراض شمارلې شی .خواولنې قول يعنی د جامع صغيرروايت زيات صحيح دې.

وَلَوْكَانَتْ قَاعِدَةً فَاضْطَجَعَتْ اوکه ښځه ناسته وی .بيا په ډډه باندې سملاسته فَفِيهِ رِوَايَتَانِ عَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ نو په دې کې د ابويوسف رحمه الله نه دوې [دوه] روايتونه دی

حل اللغة* ① اضطجاع: په ډډه سملاستل ]

تشريح:-اوکه دا ښځه د اختيارپه وخت کې ناسته وی .اوددې نه روسته په ډډه سملاستله.نوپه دې اړه کې دامام ابويوسف رحمه الله نه دوې [دوه] روايتونه دی .① دحسن بن زياد رحمه الله روايت دا دې.چه ددې خيار نه باطليږی .
② اودحسن بن ابی مالک رحمه الله روايت دا دې.چه خيارئې باطليږی .امام زفر رحمه الله هم ددې قائل دې.

وَلَوْقَالَتْ أُدْعُ أَبِي أَسْتَشِيرُهُ أَوْشُهُودًا أُشْهِدُهُمْ اوکه ښځې اووئيل.زه خپل پلار راغواړم.چه مشوره اوکړم.یا ګواهان راؤغواړم.چه دوی ګواه جوړ کړم فَهِيَ عَلَى خِيَارِهَا نودا پخپل اختيار باندې ده لِأَنَّ الْإِسْتِشَارَةَ لِتَحَرِّي الصَّوَابِ ځکه چې مشوره اخستل.خود صحيح خبرې اخستلو لپاره دی وَالْإِشْهَادَ لِلتَّحَرُّزِ عَنِ الْإِنْكَارِ او ګواه جوړول د انکار نه د بچکيدلو لپاره دی فَلَا يَكُونُ دَلِيلَ الْإِعْرَاضِ نو( دا) به هم د اعراض دليل نه وی

حل اللغة* ① التحرى: سوچ ② الصواب: صحيح ③ الاستشارة: مشوره کول ]

تشريح:-په [ولوقالت ادعوا أبی أستشير] کې څونسخې دی .① يودا چې دا [أدعوا] د واحد متکلم صيغه ده.په دې صورت کې مطلب دا دې.چه زه خپل پلار راواړم.چه مشوره اوکړم.② يا ګواهان راواړم.چه هغوی ګواهان جوړ کړم.بهرحال په دې صورت کې هم دا ښځه په خپل اختيارباندې پاته ده.دليل دا دې.چه مشوره کول د صحيح رائې معلومولو لپاره وی .اوګواهان قائمول ددې لپاره وی .چه د خاوند د انکار نه بچ شی .نودا هم د اعراض دليل نه دې.

وَإِنْ كَانَتْ تَسِيرُ عَلَى دَابَّةٍ أَوْفِي مَحْمِلٍ .اوکه ښځه په يو څاروی باندې روانه وه.یا په کيجاوه کې وه فَوَقَفَتْ بيا سوارلۍ ودريدله. فَهِيَ عَلَى خِيَارِهَا نودا به پخپل اختيار باندې ( باقی ) وی وَإِنْ سَارَتْ بَطَلَ خِيَارُهَا اوکه

حیوان (څاروي) روان شو.نو ددې اختیار باطل شو لِأَنَّ سَيْرَ الدَّابَّةِ وَوُقُوفَهَا مُضَافٌ إِلَيْهَا ځکه چې د څاروی روانیدل،او ودریدل ښځې اړخ ته منسوب دی

تشریح:- اوکه دغه ښځه په څاروی باندې سوره روانه وه.اوپه هغه وخت کې ورته خاوند اختیار ورکړلو.نودا ښځه به په خپل اختیارپاته وی .اوکه هغه څاروئې نې روان کړلو.نوددې اختیارختم شو.ځکه چې د څاروی روانیدل اوودریدل ښځې اړخ ته منسوب وی .

وَالسَّفِينَةُ بِمَنْزِلَةِ الْبَيْتِ او کښتئ په منزله د کور ده لِأَنَّ سَيْرَهَا غَيْرُ مُضَافٍ إِلَى رَاكِبِهَا ځکه چې د کښتئ تلل ددې د سوارلو اړخ ته منسوب نه دی أَلَا تَرَى أَنَّهُ لَا يَقْدِرُ عَلَى إِيقَافِهَا آیا نه ګوري.چه سوارلئ ته په کښتئ اودرولو باندې قدرت نشته وَرَاكِبُ الدَّابَّةِ يَقْدِرُ اود څاروی سوارلئ قادر ده.

حل اللغة* ① السفينة: کښتئ ② راکب: سور ③ ایقاف: اودرول ]

تشریح:- او کښتئ د کورپشان ده.یعنی که کښتئ روانه وی .نود ښځې اختیار نه باطلیږی .ځکه چې د کښتئ روانیدل دهغې سور اړخ ته نه منسوب کیږی .تاسوغور اوکړئ. چې په کښتئ سوروی .نودهغې په اودرولوقادر نه وی .البته په څاروی سورد هغې په اودرولوقادر وی .

## دمشیت بیان

فصل:فی المشیئة: ( دا) فصل د مشیت ( په بیان ) کې دې وَمَنْ قَالَ لِامْرَأَتِهِ اوکوم کس چې خپلې ښځې ته اوونیل طَلِّقِي نَفْسَكِ ته خپل خان ته طلاق ورکړه وَلَا نِيَّةَ لَهُ أَوْ نَوَى وَاحِدَةً اود خاوند هیڅ نیت نشته.یا ده یو نیت کړې وی فَقَالَتْ: طَلَّقْتُ نَفْسِي نو ښځې اوونیل. ما خپل خان ته طلاق ورکړو فَهِيَ وَاحِدَةٌ رَجْعِيَّةٌ نو دا به یو رجعی وی ،وَإِنْ طَلَّقَتْ نَفْسَهَا ثَلَاثًا وَقَدْ أَرَادَ الزَّوْجُ ذَلِكَ اوکه دې خپل خان ته درې ( طلاقه) ورکړل.حالانکه خاوند ددې اراده هم کړې ده وَقَعْنَ عَلَيْهَا نو په دې به ( درې واړه) واقع کیږی

تشریح:- که سړی خپلې ښځې ته [طلقی نفسك] اوونیل.اوسړی څه نیت نه وی کړې.یا ئې د یوطلاق نیت کړې وی .بیا ښځې په ځواب کې اوونیل.[طلقت نفسی ] نویوطلاق واقع کیږی .اوکه ښځې په خان باندې درې طلاقه واقع کړلو.او خاوند هم د دریونیت کړې وی .نوپه دې باندې (درې) واقع کیږی .

وَهَذَا لِأَنَّ قَوْلَهُ طَلِّقِي مَعْنَاهُ افْعَلِي فِعْلَ التَّطْلِيقِ، وَهُوَ اسْمُ جِنْسٍ اودا ځکه دی .چه دده قول،طلقی ، په دې معنی کې دې.چه ته د طلاق فعل اوکړه وهو اسم جنس او طلاق اسم جنس دې فَيَقَعُ عَلَى الْأَدْنَى مَعَ احْتِمَالِ الْكُلِّ كَسَائِرِ أَسْمَاءِ الْأَجْنَاسِ نو لفظ طلاق به واقع کیږی .په ادنی ( یو) باندې.د کُل ( درې) احتمال سره.لکه واړه اسمائې اجناس فَلِهَذَا تَعْمَلُ فِيهِ نِيَّةُ الثَّلَاثِ نوهم په دې وجه په طلاق کې د دریو نیت کارآمد ( ګټور ) کیږی وَيَنْصَرِفُ إِلَى وَاحِدَةٍ عِنْدَ عَدَمِهَا وَتَكُونُ الْوَاحِدَةُ رَجْعِيَّةً اود عدم نیت په وخت به یو طلاق اړخ ته راګرځی .او یو به رجعی وی لِأَنَّ الْمُفَوَّضَ إِلَيْهَا صَرِيحُ الطَّلَاقِ ځکه چې ښځې اړخ ته چې کوم سپارلې شوې دې.( هغه) صریح الطلاق دې.او هغه رجعی دې

تشریح:-د دې دواړو صورتونودلیل دا دې.چه د [طلقی نفسك] معنی دا ده.چه [افعلی فعل الطلاق] یعنی صیغه دامر مصدر لره متضمن ده.اومصدر اسم جنس دې.په ادنی یعنی فرد حقیقی باندې صادقیږی .اود کل یعنی فرد حکمی احتمال لری .دا حکم د ټولواسماء اجناس دې.هم دا وجه ده.چه په [طلقی ] کې د د ریونیت صحیح کیږی .اوکه نیت ئې نه وی کړې.نوفرد حقیقی یعنی یو اړخ ته به راجع وی .اودا یوطلاق به رجعی وی .ددی دلیل دا دې.چه ښځې ته صریحی طلاق حواله شوې دې.اوپه صریحی طلاق سره طلاق رجعی واقع کی[illegible]



وَلَوْ نَوَى الثِّنْتَيْنِ لَا تَصِحُّ اوکه د دوې [دوه] نیت ئې اوکړو.نو صحیح نه دې لِأَنَّهُ نِيَّةُ الْعَدَدِ إِلَّا إِذَا كَانَتِ الْمَنْكُوحَةُ أَمَةً ځکه چې نیت عدد دې.خو کله چې منکوحه وینځه وی .(نود دوې [دوه] نیت صحیح دې) لِأَنَّهُ جِنْسٌ فِي حَقِّهَا ځکه چې دا د هغې په حق کې جنس دې.

تشریح:-اوکه د دوونیت ئې کړې وی .نوصحیح به نه وی .ځکه چې دوې [دوه] عدد دې.اود مصدر نه د عدد نیت کول صحیح نه دی .البته که ښځه وینزه وی .نوبیا د دوو نیت صحیح دې.ځکه چې دوې [دوه] د وینزې په حق کې فرد حکمی دې.

## د[طلقی نفسك] په جواب کې [أبنت نفسی] ویل

وَإِنْ قَالَ لَهَا اوکه سړی ښځې ته اوونیل طَلِّقِي نَفْسَكِ ته خپل خان ته طلاق ورکړه فَقَالَتْ: أَبَنْتُ نَفْسِي طَلُقَتْ هغې اوونیل.چه ماخپل خان بائنه کړو نو مطلقه ( رجعیه) به وی . وَلَوْ قَالَتْ: قَدِ اخْتَرْتُ نَفْسِي اوکه ښځې اوونیل.چه ما خپل خان اختیار کړو لَمْ تَطْلُقْ نو طلاق به نه واقع کیږی

تشریح:- مسئله،① که خاوندخپلې ښځې ته اوونیل.[طلقی نفسك] اوښځې په ځواب کې اوونیل.[أبنت نفسی]نوپه دې صورت کې طلاق رجعی واقع کیږی .② اوکه په ځواب کې ئې [اخترت نفسی] اوونیل. نو طلاق نه واقع کیږی .

لِأَنَّ الْإِبَانَةَ مِنْ أَلْفَاظِ الطَّلَاقِ ځکه چې بائنه کول د طلاق د الفاظو څخې دی ،أَلَا تَرَى أَنَّهُ لَوْ قَالَ لِامْرَأَتِهِ أَبَنْتُكِ يَنْوِي بِهِ الطَّلَاقَ آیا ته نه ګورې.که ( سړی ) اوونیل.ما ته بائنه کړې.په داسې حال کې چې ددې نه د طلاق نیت کوی أَوْ قَالَتْ: أَبَنْتُ نَفْسِي یا ښځې اوونیل.ما خپل خان بائنه کړو فَقَالَ الزَّوْجُ: قَدْ أَجَزْتُ ذَلِكَ بیا خاوند اوونیل.ما ددې اجازت درکړو بَانَتْ نودا بائنه شوه فَكَانَتْ مُوَافِقَةً لِلتَّفْوِيضِ فِي الْأَصْلِ نو بائنه کول په اصل طلاق کې د تفویض موافق شو إِلَّا أَنَّهَا زَادَتْ فِيهِ وَصْفًا وَهُوَ تَعْجِيلُ الْإِبَانَةِ مګر داچه ښځې په دې کې یو وصف زیات کړو.او هغه تعجیل د ابانت دې فَيَلْغُو الْوَصْفُ الزَّائِدُ نو وصف زائد به لغوه وی وَيَثْبُتُ الْأَصْلُ او اصل طلاق ثابت شو كَمَا إِذَا قَالَتْ: طَلَّقْتُ نَفْسِي تَطْلِيقَةً بَائِنَةً لکه کله چې ښځې اوونیل،طلقت نفسی تطلیقة بائنة وَيَنْبَغِي أَنْ تَقَعَ تَطْلِيقَةٌ رَجْعِيَّةٌ او مناسب دادی .چه طلاق رجعی واقع شی .په

تشریح:-د دې دواړو په مینځ کې وجه د توپیر دا ده.چه خاوند دطلاق په نیت خپلې ښځې ته اوونیل.[ابنت طلاق ابنتك] یا ښځې اوونیل.[أبنت نفسی] او خاوند [أجزت ذالك] اوونیل.نوښځه به مطلقه بائنه شی .په دې صورت کې د ښځې کلام [أبنت نفسی] د خاوند دکلام [طلقی نفسك] سره په اصل طلاق کې موافق دې.خوښځې په ځواب کې د بینونت وصف اضافه اوکړله.نواصل طلاق به واقع شی .اوزیاتی وصف به لغو وی .اودا داسې ده.چه [طلقی نفسك] په ځواب کې ښځه اووائی .[طلقت نفسی تطلیقة بائنة]

بِخِلَافِ الْاِخْتِيَارِ خلاف د اختیار لِأَنَّهُ لَيْسَ مِنْ أَلْفَاظِ الطَّلَاقِ ځکه چې هغه د طلاق د الفاظوڅخې نه دې أَلَا تَرَى أَنَّهُ لَوْ قَالَ لِامْرَأَتِهِ اخْتَرْتُكِ آیا ته نه ګورې.که خپلې ښځې ته اووائی .ته ما اختیارمنه کړې أَوِ اخْتَارِي يَنْوِي الطَّلَاقَ یا ته اختیار کړه.حالانکه د طلاق نیت ئې کړې دې لَمْ يَقَعْ، نو طلاق به نه واقع کیږی وَلَوْ قَالَتْ ابْتِدَاءً اخْتَرْتُ نَفْسِي او که ښځې ابتداءً اوونیل.چه ما خپل خان اختیار کړو فَقَالَ الزَّوْجُ: قَدْ أَجَزْتُ نو خاوند اوونیل.چه ما اجازت درکړو لا يقع شيء نوهیڅ به نه واقع کیږی لَا يَقَعُ شَيْءٌ إِلَّا أَنَّهُ عُرِفَ طَلَاقًا بِالْإِجْمَاعِ إِذَا حَصَلَ جَوَابًا لِلتَّخْيِيرِ خو دا چې طلاق د صحابو ﷺ په اجماع سره معلوم شو.کله چې د تخییر ځواب واقع شی وَقَوْلُهُ طَلِّقِي نَفْسَكِ لَيْسَ بِتَخْيِيرٍ فَيَلْغُو اود خاوند قول، طلقی نفسك، تخییر نه دې.نو لغو به وی وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ أَنَّهُ لَا يَقَعُ شَيْءٌ بِقَوْلِهَا أَبَنْتُ نَفْسِي اود ابوحنیفه رحمه الله نه روایت دې.چه دده په قول ،ابنت نفسی ، سره به هیڅ نه واقع کیږی لِأَنَّهَا أَتَتْ بِغَيْرِ مَا

**فَوَّضَ إِلَيْهَا** ځكه چې ښځې د هغې نه غير راوړو. كوم چې دې اړخ ته سپارلې شوې وو **إِذْ الإِبَانَةُ تُغَايِرُ الطَّلَاقَ** ځكه چې ابانت د طلاق مغاير دې.

**تشريح:** په خلاف د لفظ د اختيار، ځكه چې لفظ د اختيار د طلاق په الفاظوكې نه دې. هم دا وجه ده. كه خاوند خپلې ښځې ته په نيت دطلاق [أخترتك] اوونيل. يا نې ورته [إختارى] اوونيل ③ يا ښځې داول نه [إخترت نفسى] اوونيل. اوسړى ورته ځواب وركړلو. چه [أجزت] نوپه دې درې واړه صورتونوكې طلاق نه واقع كيږى.

③ ځكه چې د اختيارلفظ د طلاق په معنى خلاف القياس د صحابو رضي الله عنهم په اجماع سره په هغه وخت كې ثابتيږى. چه د تخييرپه ځواب كې وى. يعنى چې سړې [إختارى] اووائى. اوښځه [إخترت نفسى] په ځواب كې اووائى. اودلته چونكه د خاوند وينا چې [طلقى نفسك] تخييرنه دې. نوځكه د ښځې كلام چې [إخترت نفسى] د خاوند د كلام [طلقى نفسك] سره موافق نه دې. ددې امله به لغوشى.

③ دامام ابوحنيفه رحمة الله عليه نه روايت دې. چه د خاوند د قول چې [طلقى نفسك] په ځواب كې ښځې [أبنت نفسى] اوونيل. نوپه دې سره هم طلاق نه واقع كيږى. ځكه چې په دې صورت كښې هم د ښځې كلام د خاوند د كلام سره موافق نه دې. ځكه چې سړى ورته لفظ د طلاق حواله كړې وو. اوښځې واقع كړلو لفظ د ابانت، اوابانت د طلاق نه مغاير (جدا) دې.

## د [طلقى نفسك] نه د رجوع عدم صحت

**وَلَوْ قَالَ لَهَا: طَلِّقِي نَفْسَكِ** اوكه سړى اوونيل. ته خپل خان ته طلاق وركړه **فَلَيْسَ لَهُ أَنْ يَرْجِعَ عَنْهُ** نو خاوند ته دا (اختيار) نشته. چه ددې نه رجوع اوكړى

**تشريح:-** صورت دمسئلې دا دې. چه خاوند خپلې ښځې ته اووائى. [طلقى نفسك] نواوس خاوندته دا اختيار نشته. چه د خپلې خبرې نه رجوع اوكړى.

**لِأَنَّ فِيهِ مَعْنَى الْيَمِينِ** ځكه چې په سپارلوكې د يمين (تعليق) معنى ده **لِأَنَّهُ تَعْلِيقُ الطَّلَاقِ بِتَطْلِيقِهَا**، ځكه چې دا دښځې په طلاق وركاوه باندې معلق كول دى **وَالْيَمِينُ تَصَرُّفٌ لَازِمٌ** او يمين، تصرف لازم دې

**تشريح:-** دليل دا دې. چه د خاوندپه قول كې چې [طلقى نفسك] دقسم په معنى دې. ځكه چې په دې صورت كې طلاق د ښځې طلاق وركولوپورې معلق كولې شى. اوقسم تصرف لازمه دې. نوځكه ورته د رجوع كاوه اختيارنشته.

**وَلَوْ قَامَتْ عَنْ مَجْلِسِهَا** اوكه هغه د خپل مجلس نه پاسيدله **بَطَلَ** نو تفويض باطل شو **لِأَنَّهُ تَمْلِيكٌ** ځكه چې دا تمليك دې **بِخِلَافِ مَا إِذَا قَالَ لَهَا: طَلِّقِي ضَرَّتَكِ** په خلاف د هغه صورت، كله چې ښځې ته اووائى. ته خپل بنې ته طلاق وركړه **لِأَنَّهُ تَوْكِيلٌ وَإِنَابَةٌ** ځكه چې وكيل او نائب جوړول دى **فَلَا يَقْتَصِرُ عَلَى الْمَجْلِسِ وَيَقْبَلُ الرُّجُوعَ** نو په مجلس به منحصر نه وى. او رجوع به قبلوى.

**تشريح:-** كه ښځه د مجلس نه پاسيدله. نوددې اختيارباطل شو. ځكه چې په [طلقى نفسك] سره ښځه د طلاق مالكه جوړولې شى. اوتمليكات په مجلس پورې منحصروى. نوځكه د مجلس نه په پاسيدود ښځې اختيارختميږى.

③ ددې په خلاف چې خاوند ښځې ته اووائى. چه [طلقى ضرتك] ځكه چې د ښځه دخپلې بن دطلاق وكيله اونائبه جوړول دى. اوتوكيل په مجلس پورې منحصر نه وى. اوتوكيل رجوع هم قبلوى. (چه يوكس وكيل جوړ كړى. اوبيا نې د وكالت نه معزوله كړى) نوځكه په دغه صورت كې خاوند د خپلې خبرې نه رجوع كولې حاصل دا چې ددې مسئلې دوې [دوه] حكمونه دى. ① يود قسم د معنى لزوم ته نظركول ② دوهم په



مجلس پورې د تمليك د معنى منحصر كيدو باندې نظركول.

③ دلته دوې [دوه] اشكاله دى. ① يودا چې [طلقى نفسك] نې يمين پورې خاص كړې دې. او [طلقى ضرتك] نې نه دې خاص كړې. حالانكه لكه ځنگه چې د [طلقى نفسك] معنى [إن طلقت نفسك فأنت طالق] ده. نودغه دول د [طلق ضرتك] معنى [إن أردت طلاقها فهى طالق] ده. نوپه دې كې وجه د توپير څه ده. ② دوهم اشكال دا دې. چه اول دتمليك او دوهم د توكيل سره دخاص كولوڅه وجه ده؟

③ ① داول اشكال ځواب دا دې. چه ديمين معنى په داسې څيزپورې معلق كولوسره متحقق كيږى. چه دهغې وجود متردد وى. اوكه د بن طلاق ښځې ته حواله كړې شى. نوعادتاً اوطبعاً دطلاق وجود يقينى دې. نودا د شرط جوړيدو صلاحيت نه لرى. ② د دوهم اشكال ځواب دا دې. چه مالك هغه دې. څوك چې د خپل خان لپاره عمل كوى. اووكيل دغير لپاره عمل كوى. اوښځه په طلاق كې دخپل خان لپاره عمل كوى. اود خپلې بن په طلاق كې د خپل خاوند لپاره عمل كوى. نوښځه دخپل طلاق مالكه جوړيدې شى. خود خپلې بن د طلاق مالكه نشى جوړيدې.

## د [طلقى نفسك متى شئت] حكم

**وَإِنْ قَالَ لَهَا: طَلِّقِي نَفْسَكِ مَتَى شِئْتِ** اوكه ښځې ته نې اوونيل. چه ته خپل نفس ته طلاق وركړه. كوم وخت چې نه غوارې **فَلَهَا أَنْ تُطَلِّقَ نَفْسَهَا فِي الْمَجْلِسِ وَبَعْدَهُ** نو ښځې ته اختيار دې. چه خپل نفس ته طلاق وركړى. په مجلس كې، اود مجلس نه پس. **لِأَنَّ كَلِمَةَ مَتَى عَامَّةٌ فِي الْأَوْقَاتِ كُلِّهَا** ځكه چې كلمه د متى په ټولو وختونو كې عام ده **فَصَارَ كَمَا إِذَا قَالَ فِي أَيِّ وَقْتٍ شِئْتِ** نوداسې شوه. لكه چې كله اووائى. فى اى وقت شئت

**تشريح:-** مسئله دا ده. كه خاوند خپلې ښځې ته اوونيل. چه [طلقى نفسك متى شئت] نوښځې ته اختياردې. كه په مجلس كې خان ته طلاق وركوى اوكه د مجلس نه پس. دليل دا دې. چه كلمه د متى ټولو وختونوته عامه ده. نودا داسې شوه. لكه چې خاوند خپلې ښځې ته اووائى. چه [طلقى نفسك فى أي وقت شئت] د وخت دعموم د امله ښځې ته په هروخت كې اختيارحاصل دې. كه په مجلس كې طلاق وركوى اوكه دمجلس نه پس.

**وَإِذَا قَالَ لِرَجُلٍ: طَلِّقِ امْرَأَتِي** وكله چې اووائى. يو كس ته. زما ښځې ته طلاق وركړه **فَلَهُ أَنْ يُطَلِّقَهَا فِي الْمَجْلِسِ وَبَعْدَهُ** نو هغه ته اختيار دې. چه دې هغې ته په مجلس كې اود مجلس نه روسته طلاق وركړى **وَلَهُ أَنْ يَرْجِعَ عَنْهُ** اود (خاوند) لپاره جائز دى. چه هغه رجوع اوكړى **لِأَنَّهُ تَوْكِيلٌ وَاسْتِعَانَةٌ** ځكه چې دا توكيل او استعانت دې **فَلَا يَلْزَمُ وَلَا يَقْتَصِرُ عَلَى الْمَجْلِسِ** نونه به لازم وى. اونه به په مجلس باندې منحصر وى **بِخِلَافِ قَوْلِهِ لِامْرَأَتِهِ: طَلِّقِي نَفْسَكِ** په خلاف ددې چه (ده) خپلې ښځې ته اوونيل. ته خپل نفس ته طلاق وركړه **لِأَنَّهَا عَامِلَةٌ لِنَفْسِهَا** ځكه چې هغه د خپل نفس لپاره عمل كونكې ده. **فَكَانَ تَمْلِيكًا لَا تَوْكِيلًا** نودا به تمليك وى. توكيل به نه وى

**تشريح:-** دويمه مسئله دا ده. چه يوسړى بل كس ته اوونيل. [طلق إمرأتى] نودغه وكيل ته اختياردې. چه دده ښځې ته په دغه مجلس كې طلاق وركوى اوكه د مجلس نه پس. اود خاوند لپاره دخپل قول نه رجوع كول هم جائزدى.

③ دليل دا دې. چه دې كس دخپل ښځې طلاق وركاوه لپاره بل كس وكيل جوړ كړلو. اودهغه نه نې كومك اوغوښتلو. اووكالت نه لازمونكې وى. اونه په مجلس پورې منحصروى. نوځكه د طلاق وكيل ته اختياردې. كه په مجلس كې طلاق وركوى اوكه پس. اوخاوندته د رجوع كولواختيارحاصل دې. ددې په خلاف كه خاوند خپلې ښځې ته [طلقى نفسك] اوونيل. نودښځې دا اختيارد مجلس پورې خاص دې. او خاوند ته د خپل قول نه د رجوع كولوحق هم نشته.

اووجه دفرق دا ده.چه د خاوند قول [طلقي نفسك] تمليك دي.ځکه چې ښځه دخپل ځان لپاره عمل کوي. اووکيل هغه وي .چه د بل لپاره عمل کوي .اودا وړاندې تيرشوی دی .چه د تمليك په ټولو صورتونو کې خاوند ته د رجوع کولواختيارنشته.اوتمليك دمجلس پورې خاص وي .

**وَلَوْقَالَ لِرَجُلٍ: طَلِّقْهَا إِنْ شِئْتَ** اوکه سړي يو بل سړي ته اووئيل.چه ته دې ( زما ښځې ) ته طلاق ورکړه.که ته غواړې **فَلَهُ أَنْ يُطَلِّقَهَا فِي الْمَجْلِسِ خَاصَّةً** نو دده لپاره جائز دی .چه هغه دې ته خاص طور باندې په مجلس کې طلاق ورکړي **وَلَيْسَ لِلزَّوْجِ أَنْ يَرْجِعَ** او خاوند ته د رجوع کاوه اختيار هم نشته

**تشريح:-** دريمه مسئله دا ده.چه سړې بل کس ته اووائي .که ته غواړې نوزما ښځې ته طلاق ورکړه.① نوپه دې صورت کې هغه لره صرف په دغه مجلس کې د طلاق ورکولواختيار دې.او خاوند ته د خپلې خبرې نه د رجوع کولواختيارهم نشته.

**وَقَالَ زُفَرُ رَحِمَهُ اللَّهُ: هَذَا وَالْأَوَّلُ سَوَاءٌ** او امام زفر رحمه الله فرمائي .چه دا او اول دواړه برابر دی **لِأَنَّ التَّصْرِيحَ بِالْمَشِيئَةِ كَعَدَمِهِ** ځکه چې د مشيت صراحت د عدم صراحت پشان دې **لِأَنَّهُ يَتَصَرَّفُ عَنْ مَشِيئَتِهِ** ځکه چې هغه پخپل مشيت سره تصرف کوي .نود وکيل بالبيع پشان شو **فَصَارَ كَالْوَكِيلِ بِالْبَيْعِ إِذَا قِيلَ لَهُ: بِعْهُ إِنْ شِئْتَ** کله چې ده ته اووئيلي شي .که ته غواړې نو دا خرخ کړه

**تشريح:-** امام زفر رحمه الله فرمائي .چه دا قول [طلق إمرأتي إن شئت) اواولنې قول [طلق إمرأتي] دواړه په حکم کې برابردی .

اودليل دا دې.چه د مشيت صراحتاً ذکرکول اونه ذکرکول دواړه برابردی .ځکه چې هغه کس چاته چې نې د طلاق اختياورورکړې دې.هغه هم په خپل مشيت باندې تصرف کوي .ځکه چې په طلاق ورکولوکې دده اجنبي فعل هم د اول صورت پشان توکيل دې. لکه څنګه چې وکيل بالبيع ته اووائي .چه [بعـه إن شـئت] اوتوکيل دمجلس پورې خاص نه وي .اوموکل ته د رجوع اختيارحاصل نه وي .نودغه به دلته په دريمه مسئله کې هم اختياردمجلس پورې خاص نه وي .اود موکل يعني خاوند لپاره دخپل قول نه د رجوع کولوحق هم شته.

**وَلَنَا أَنَّهُ تَمْلِيكٌ** او زمونږ دليل دادې.چه دا تمليك دې **لِأَنَّهُ عَلَّقَهُ بِالْمَشِيئَةِ** ځکه چې دا نې په مشيت باندې معلق کړې دې **وَالْمَالِكُ هُوَ الَّذِي يَتَصَرَّفُ عَنْ مَشِيئَتِهِ** اومالك هم هغه دې.څوك چې پخپل مشيت باندې تصرف کوي **وَالطَّلَاقُ يَحْتَمِلُ التَّعْلِيقَ بِخِلَافِ الْبَيْعِ** او طلاق د تعليق احتمال لري .په خلاف د بيع **لِأَنَّهُ لَا يَحْتَمِلُهُ** ځکه چې دا د تعليق احتمال نه لري .

**تشريح:-** زمونږ دليل دا دې.چه قول ثاني [ طلقها إن شئت] داسې تمليك دې.چه په دې کې دتعليق معنى موجود ده.نودتمليك اعتبارچه کولې شی .نودا اختياربه د مجلس پورې خاص وي .اودتعليق (يمين) د معنى اعتبارچه کولې شی .نودا تصرف به لازم وي .اوخاوندته به دخپل قول نه د رجوع کولواختيارحاصل نه وي . او[والطلاق يحتمل التعليق] سره دامام زفر رحمه الله ددليل ځواب ورکوي .حاصل د ځواب دا دې.چه طلاق په بيع باندې قياس کول قياس مع الفارق دې.ځکه چې طلاق د تعليق احتمال لري .اوبيع دتعليق احتمال نه لري .

**وَلَوْقَالَ لَهَا** اوکه ( يوسړی خپلې) ښځې ته اووئيل **طَلِّقِي نَفْسَكِ ثَلَاثًا** ته خپل نفس ته درې طلاقه ورکړه **فَطَلَّقَتْ وَاحِدَةً فَهِيَ وَاحِدَةٌ** نو هغې يو طلاق واقع کړو. نودا به يو وي

### د[طلقي نفسك ثلاثاً] په جواب کې د [طلقت واحدة] وئيل



**تشريح:-** مسئله دا ده.چه خاوند خپلې ښځې ته د درې طلاقوواقع کولواختيارورکړلو.ښځې په خپل ځان باندې يوواقع کړلو.نودا يوطلاق به واقع کيږي

**لِأَنَّهَا مَلَكَتْ إِيقَاعَ الثَّلَاثِ** ځکه چې دا ښځه د دريو (طلاقو) واقع کاوه مالکه شوه **فَتَمْلِكُ إِيقَاعَ الْوَاحِدَةِ ضَرُورَةً** نود يو واقع کاوه به هم بداهةً مالکه وي .

**تشريح:-** .دليل دا دې.چه هرکله ښځه د درې طلاقومالکه ده.نوددې په ضمن کې ديوطلاق هم مالکه ده.

### د [طلقي نفسك واحدة] په جواب کې درې طلاقه ورکول

**وَلَوْقَالَ لَهَا: طَلِّقِي نَفْسَكِ وَاحِدَةً** اوکه (خاوند) خپلې ښځې ته اووئيل.ته خپل نفس ته يو طلاق ورکړه **فَطَلَّقَتْ نَفْسَهَا ثَلَاثًا** هغې په خپل نفس باندې درې واقع کړل **لَمْ يَقَعْ شَيْءٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ** نود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به هيڅ نه واقع کيږي

**تشريح:-** صورت د مسئلې دا دې.چه يوکس خپلې ښځې ته اووئيل. [طلقي نفسك واحدة] اوهغې په ځان باندې درې طلاقه واقع کړل.① نودامام ابوحنيفه رحمه الله په نيزيوهم نه واقع کيږي .هم دا دامام زفراوامام مالك رحمه الله قول دې.

**وَقَالَا: تَقَعُ وَاحِدَةٌ** او صاحبين رحمهما الله فرمائي .چه يو به واقع کيږي **لِأَنَّهَا أَتَتْ بِمَا مَلَكَتْهُ** ځکه چې ښځې هغه راوړو.د کومې چې هغه مالکه ده **وَزِيَادَةٍ فَصَارَ كَمَا إِذَا طَلَّقَهَا الزَّوْجُ أَلْفًا** اوکه زياتې ( نې راوړو).نو داسې شوه.لکه چې خاوند( پخپله) دې ته يو زر طلاقونه ورکړي

**تشريح:-** اوصاحبين رحمهما الله فرمائي .چه يوطلاق واقع کيږي .امام شافعي اوامام احمد رحمهما الله هم ددې قائلين دی .

اودصاحبينو رحمهما الله دليل دا دې.چه خاوند چې ښځه د کوم څيزمالکه جوړه کړې وه.نوهغې هغه واقع کړلو.اود هغې نه زياتی نې هم واقع کړل.نودا داسې شوه.لکه چې خاوند خپلې ښځې ته اووئيل.[طلقي نفسك] اوښځې خپل ځان ته طلاق ورکړلو.اوخپلې بن ته نې هم ورکړلو.نوڅه چې ښځې ته سپارلې شوی دی .هغه واقع کيږي .اوڅه چې زياتې دی .هغه نه واقع کيږي .يعنې د بن طلاق نه واقع کيږي .نودغه ډول به په دې مسئله کې هم يوطلاق واقع کيږي .اوپاته به لغو وی .اودا داسې دی .لکه چې خاوند په خپله خپلې ښځې ته يوزرطلاقه ورکړل.نودرې طلاقه د کومو چې دې شرعاً مالك دې.هغه به واقع کيږي .اوپاته چې د کومو مالك نه دې.هغه به لغو وی .

**وَلِأَبِي حَنِيفَةَ أَنَّهَا أَتَتْ بِغَيْرِ مَا فُوِّضَ إِلَيْهَا** اود ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې.چه ښځې داسې څيز راوړو.کوم چې خاوند دې ته نه وو سپارلې **فَكَانَتْ مُبْتَدِئَةً** نو( ښځه) په ابتداء کې ( خپل ځان ته طلاق ورکونکې شوه) **وَهَذَا لِأَنَّ الزَّوْجَ مَلَّكَهَا الْوَاحِدَةَ** اودا ځکه چې خاوند دا د يو طلاق مالکه جوړه کړې ده **وَالثَّلَاثُ غَيْرُ الْوَاحِدَةِ** او درې د يو غير دې. **لِأَنَّ الثَّلَاثَ اسْمٌ لِعَدَدٍ مُرَكَّبٍ مُجْتَمِعٍ** ځکه چې درې خو د عدد مرکب مجتمع نوم دې **وَالْوَاحِدَةُ فَرْدٌ لَا تَرْكِيبَ فِيهِ** او يو فرد دې.چه په دې کې ترکيب نشته **فَكَانَتْ بَيْنَهُمَا مُغَايَرَةٌ عَلَى سَبِيلِ الْمُضَادَّةِ** نود يو او دريو په منځ کې ، تغاير على سبيل التضاد ، شو

**تشريح:-** دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې.چه خاوند ښځه د کوم څيزمالکه کړې وه.هغې د هغې نه سوا بل څيزواقع کړلو.ځکه چې خاوند ښځه د يوطلاق مالکه کړې وه.اوهغې درې چې د يونه غيردې هغه واقع کړل.ځکه چې عدد مرکب د مجتمع نوم دې.اوواحد د فرد نوم دې.په دې کې ترکيب نه وی .نوپه يو او دريو کې تضاد شو.ځکه يوغيرمرکب دې.اودرې مرکب دې.اودرې عدد دې اويوغيرعدد دې.نوهرکله چې ښځې د هغې نه سوا بل طلاق واقع کړلو.کوم چې دې ته حواله شوې وو.نودا د ابتداء نه د طلاق واقع کونکې شوه.اوچه د پيل نه په ځان باندې کوم طلاق واقع کړی .(يعنی چې خاوند ورته اختيارنه وی ورکړې)

نو هغه نه واقع کیږي .مګردا چې خاوند اجازت ورکړي .

بِخِلَافِ الزَّوْجِ .په خلاف د خاوند لِأَنَّهُ يَتَصَرَّفُ بِحُكْمِ الْمِلْكِ چې خاوند په حکم د ملك تصرف کوي

تشریح:-ددې په خلاف کې خاوند په خپله ښځې ته یوزر طلاقه ورکړي .نودرې واقع کیږي .ځکه چې خاوند د مالك په حیثیت سره په طلاق تکلم کوي .نوچه څومره غواړي .واقع کولې شي .ځونافذالعمل به په اندازه د محل وي .

وَكَذَا هِيَ فِي الْمَسْأَلَةِ الْأُولَى .او دغه ډول ښځه هم په رومبۍ مسئله کې ( مالکه ده.او متصرفه ده) لِأَنَّهَا مَلَكَتِ الثَّلَاثَ ځکه چې هغه د دریو طلاقو مالکه وه أَمَّا هَاهُنَا لَمْ تَمْلِكِ الثَّلَاثَ او دلته کې هغه د دریو طلاقو مالکه نه وه وَمَا أَتَتْ بِمَا فُوِّضَ إِلَيْهَا فَلَغَا او هغې هغه راوتړو.کوم چې دې ته سپارلې شوې وو.نو( خاوند ته سپارل) لغو شو.

تشریح:-دغه ډول په لومړنۍ وړاندینۍ مسئله کې ښځه هم دمالکې په حیثیت سره تکلم کوي .ځکه چې د دریو مالکه وه.اوپه خپل ځان ئې یوواقع کړلو.ویه دې مسئله کې دا د دریومالکه نه ده.اوځه چې دې ته حواله شوې وو.یعنی یوطلاق نوهغه دې واقع نکړلو.نودسړي په قول اود ښځې په ځواب کې مطابقت موجود نشو.ددې أمله د ښځې قول لغو دې.

**دطلاق رجعي یا طلاق بائن په جواب کې د دواړو په عکس جواب ورکول**

وَإِنْ أَمَرَهَا بِطَلَاقٍ يَمْلِكُ الرَّجْعَةَ اوکه ( سړی ) ښځې ته د داسې طلاق حکم ورکړو.( په کوم کې ) چې رجعت کولای شي فَطَلَّقَتْ بَائِنَةً، أَوْ أَمَرَهَا بِالْبَائِنِ نو ښځې ( خپل ځان ته) بائنه طلاق ورکړو.یا خاوند دې ته د طلاق بائن حکم ورکړو فَطَلَّقَتْ رَجْعِيَّةً او هغې طلاق رجعی ورکړو وَقَعَ مَا أَمَرَ بِهِ الزَّوْجُ نو هم هغه به واقع کیږي .د کوم چې خاوند حکم ورکړې دې

تشریح:- صورت د مسئلې دا دې.چه خاوند خپلې ښځې ته د طلاق رجعی اختیارورکړلو.اوهغې په ځان باندې طلاق بائن واقع کړلو.یا ورته ده د طلاق بائن اختیارورکړلو.اوهغې په ځان باندې طلاق رجعی واقع کړلو.غرض دا چې ښځې د خاوند نه د طلاق په وصف کې مخالفت اوکړلو.نوپه دې دواړو صورتونوکې به هغه طلاق واقع کیږي .د کوم چې خاوند اختیار ورکړې وي

فَمَعْنَى الْأَوَّلِ نود اولې مسئلې صورت دادې أَنْ يَقُولَ لَهَا الزَّوْجُ: طَلِّقِي نَفْسَكِ وَاحِدَةً أَمْلِكُ الرَّجْعَةَ چې خاوند ښځې ته اووائي .ته خپل نفس ته یو داسې طلاق ورکړه.چه زه د رجعت مالك پاتې شم فَتَقُولُ: طَلَّقْتُ نَفْسِي وَاحِدَةً بَائِنَةً نو هغه ښځه وائي .چه ما خپل نفس ته یو بائن ورکړو فَتَقَعُ رَجْعِيَّةً نو یو رجعیه به واقع کیږي لِأَنَّهَا أَتَتْ بِالْأَصْلِ وَزِيَادَةِ وَصْفٍ كَمَا ذَكَرْنَا ځکه چې ښځې اصل د زیاتوالی وصف سره راوړو.لکه څنګه چې ما ذکرکړل فَيَلْغُو الْوَصْفُ وَيَبْقَى الْأَصْلُ نو وصف لغو شو.او اصل به پاته پاتې وي

تشریح:- د لومړنۍ مسئلې صورت دا دې.چه خاوند خپلې ښځې ته اووئیل .[طلقي نفسي واحدة أملك الرجعة] ښځې جوب ورکړلو.[طلقت نفسي واحدة بائنة] نوپه دې صورت کې یوطلاق رجعي واقع کیږي .دلیل دا دې.چه ښځې په ځان باندې اصل طلاق واقع کړلو.اویونې پرې وصف واقع کړلو.نووصف کوم چې د خاوند په کلام کې ذکرنه وي .هغه به لغوشي .اواصل طلاق به پاته پاتې شي .

وَمَعْنَى الثَّانِي اود دویمې مسئلې مطلب دادې أَنْ يَقُولَ لَهَا طَلِّقِي نَفْسَكِ وَاحِدَةً بَائِنَةً چې (خاوند) ښځې ته اووائي .ته خپل نفس ته یو طلاق بائن ورکړه فَتَقُولُ طَلَّقْتُ نَفْسِي وَاحِدَةً رَجْعِيَّةً نو ښځه وائي .چه ما خپل نفس ته یو رجعیه ورکړو فَتَقَعُ بَائِنَةً نو بائنه به واقع وي لِأَنَّ قَوْلَهَا وَاحِدَةً رَجْعِيَّةً لَغْوٌ مِنْهَا ځکه چې د ښځې قول، واحدة



رجعية، ددې د اړخه لغو حرکت دې لِأَنَّ الزَّوْجَ لَمَّا عَيَّنَ صِفَةَ الْمُفَوَّضِ إِلَيْهَا ځکه چې خاوند کوم طلاق ښځې ته سپارلې دې.د هغې وصف ئې متعین کړو فَحَاجَتُهَا بَعْدَ ذَلِكَ إِلَى إِيقَاعِ الْأَصْلِ دُونَ تَعْيِينِ الْوَصْفِ نو اوس ددې نه روسته د ښځې حاجت په اصل طلاق واقع کولوکې دې.( ددې) په وصف متعین کاوه کې نه دې فَصَارَ كَأَنَّهَا اقْتَصَرَتْ عَلَى الْأَصْلِ نو داسې شوه.ګویا چې ښځې په اصل طلاق باندې اکتفاء اوکړله فَيَقَعُ بِالصِّفَةِ الَّتِي عَيَّنَهَا الزَّوْجُ بَائِنًا أَوْ رَجْعِيًّا نو طلاق به هم په دغه صفت سره واقع کیږي .کوم چې خاوند متعین کړې دې که بائن وي .اوکه رجعی وي .

تشریح:-د دویمې مسئلې صورت دا دې.چه خاوند خپلې ښځې ته اووائي .[طلقي نفسك واحدة بائنة] اوښځه په ځواب کې اووائي .[طلقت نفسي واحدة رجعية] په دې صورت کې به یوطلاق بائن واقع کیږي .دلیل دا دې.چه د ښځې قول [واحدة رجعية] لغو دې.ځکه چې خاوند ورته دکوم طلاق اختیار ورکړې وو.دهغې وصف (بینونت) ئې متعین کړې وو.نوددې نه روسته ښځې ته صرف اصل طلاق واقع کاوه اړتیا دې.د وصف متعین کولو اړتیا ورته نشته.لکه چې ښځې په طلاق کې په اصل طلاق باندې اکتفاء اوکړله.نوکوم صفت چې خاوند متعین کړې وي .هم دهغې سره به واقع کیږي .که بائن وي اوکه رجعي .

التدبیز د خبرې دا شوه.چه خاوند ښځې ته اصل طلاق د وصف سره سپارلې وو.اوښځې د طلاق په صفت کې د خاوند مخالفت اوکړلو.نوځکه به اصل طلاق واقع شي .اووصف به لغو وي .

**د [طلقي نفسك ثلاثاً إن شئت] په جواب کښې یوطلاق ورکول**

وَإِنْ قَالَ لَهَا: طَلِّقِي نَفْسَكِ ثَلَاثًا إِنْ شِئْتِ اوکه ښځې ته ئې اووئیل.ته خپل نفس ته درې طلاقه ورکړه.که ته غواړې فَطَلَّقَتْ وَاحِدَةً نو ښځې یو طلاق ورکړو لَمْ يَقَعْ شَيْءٌ نو هیڅ به نه واقع کیږي

تشریح:-صورت د مسئلې، خاوند خپلې ښځې ته [طلقي نفسك ثلاثا إن شئت]اووئیل.اوښځې ځان ته یو طلاق ورکړلو.نوپه دې صورت کې هیڅ طلاق نه واقع کیږي .هم دا دامام شافعي اوامام مالك رحمهما الله قول دې.

لِأَنَّ مَعْنَاهُ إِنْ شِئْتِ الثَّلَاثَ ځکه ددې معنی ده.که ته درې غواړې وَهِيَ بِإِيقَاعِ الْوَاحِدَةِ مَا شَاءَتِ الثَّلَاثَ فَلَمْ يُوجَدِ الشَّرْطُ اوښځې د یو غوښتلو په وجه درې اونه غوښتل فلم یوجد الشرط. نو شرط اونه موندې شو.

تشریح:-دلیل دا دې.چه د خاوند قول [إن شئت] معنی ده.[إن شئت ثلاثا] خاوند ایقاع طلاق لپاره د مشیت شرط اولګولو.اوښځې یوطلاق اوغوښتلو.نوشرط موجود نشو.اوچه شرط موجود نشو.نوطلاق هم واقع نشو.

**د [طلقي نفسك واحدة إن شئت] په جواب کې درې واقع کول**

وَلَوْ قَالَ لَهَا: طَلِّقِي نَفْسَكِ وَاحِدَةً إِنْ شِئْتِ اوکه سړی ښځې ته اووئیل.ته خپل نفس ته یوطلاق ورکړه.که ته غواړې فَطَلَّقَتْ ثَلَاثًا هغې درې طلاقه ورکړل فَكَذَلِكَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله (1) نود امام صاحب په نیز هم دغه حکم دې

تشریح:- اوکه خاوند خپلې ښځې ته اووئیل.[طلقي نفسك واحدة إن شئت] اوښځې ځان ته درې طلاقه ورکړل.نودامام ابوحنیفه رحمه الله په نیزیوطلاق هم نه واقع کیږي .

لِأَنَّ مَشِيئَةَ الثَّلَاثِ لَيْسَتْ بِمَشِيئَةٍ لِلْوَاحِدَةِ كَإِيقَاعِهَا ځکه چې د دریو غوښتل د یو غوښتل نه دی .لکه څنګه چې د

(1) القول الراجح هو قول أبی حنیفة رحمه الله كذا فی فتح القدیر(۳\۴۳۱) والعنایة (۳\۴۳۱) والدرالمختار(۲\۵۲۹) والهندیة (۱\۴۰۲) نقلاً عن القول الراجح (۱\۳۲۹)-

دريو واقع کول د يو واقع کول نه دی

تشریح:-دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل وړاندې تيرشو. هغه دا چې په يو او دريوکې تغايردې. نود درې طلاقوغوښتل د يوطلاق غوښتل نه دی. ځکه چې د احدالضدين مشيت د بل مشيت لره مستلزم نه دې. يعنی شرط دا وو. چه ښځه يوطلاق اختيارکړی. اوهغې درې طلاقه اختيارکړل. نوشرط موجود نشو. نوځکه طلاق نه واقع کيږی.

اودا داسې ده. لکه چې يوکس خپلې ښځې ته اووائی. [طلقی نفسك واحـدة] اوهغې درې طلاقه واقع کړل. نو دامام ابوحنيفه رحمه الله په نيزيوطلاق هم نه واقع کيږی. ځکه چې دامام ابوحنيفه رحمه الله په نيزد دريوواقع کول د يوواقع کول نه دی.

**وَقَالَا: تَقَعُ وَاحِدَةٌ** او صاحبين رحمهما الله فرمائی. چه يو به واقع کيږی **لِأَنَّ مَشِيئَةَ الثَّلَاثِ مَشِيئَةٌ لِلْوَاحِدَةِ، كَمَا أَنَّ إِيقَاعَهَا إِيقَاعٌ لِلْوَاحِدَةِ** ځکه چې د دريو غوښتل د يو غوښتل دی. لکه څنګه چې د دريو واقع کول د يو واقع کول دی **فَوُجِدَ الشَّرْطُ**. نو شرط اوموندې شو.

تشریح:- اوصاحبين رحمهما الله فرمائی. چه يوطلاق واقع شو. دليل دا دې. چه د درې طلاقوپه خواهش کې د يوطلاق خواهش موجود دې. لکه څنګه چې د درې طلاقو واقع کول د يوطلاق واقع کول دی. اوشرط موجود شو. نويوطلاق به واقع کيږی.

حاصل د اختلاف دا دې. چه دامام ابوحنيفه رحمه الله په نيزد ديو طلاق مشيت د درې طلاقو په مشيت کې موجود نه دې. نودغه ډول د يوطلاق واقع کول د درې طلاقوپه واقع کولوکې موجود نه دی. اودصاحبينو رحمهما الله په نيزموجود دی. والله اعلم بالصواب.

## د [أنت طالق إن شئت] په جواب کې [شئت إن شئت] وئيل

**وَلَوْ قَالَ لَهَا: أَنْتِ طَالِقٌ إِنْ شِئْتِ** اوکه ښځې ته ئې اووئيل. چه ته طالقه ئې. که ته غواړې **فَقَالَتْ: شِئْتُ إِنْ شِئْتَ** بيا ښځې اووئيل. او زه غواړم که ته غواړې **فَقَالَ الزَّوْجُ: شِئْتُ يَنْوِي الطَّلَاقَ** بيا سړی اووئيل. ما اوغوښتل په داسې حال کې چې د طلاق نيت کوی **بَطَلَ الْأَمْرُ** نو امر بالید باطل شو

تشریح:- صورت د مسئلې دا دې. چه خاوند خپلې ښځې ته اووائی. [أنـت طـالق إن شـئت] اوښځې ورته په خواب کې اووئيل. [إن شئتَ شئتُ]. اوسړی د طلاق نيت کړې هم وی. نوپه دې صورت کې امربالید باطل شو. اودښځې لپاره اختيارپاته پاتې نشو.

**لِأَنَّهُ عَلَّقَ طَلَاقَهَا بِالْمَشِيئَةِ الْمُرْسَلَةِ** ځکه چې خاوند دده طلاق په مطلق غوښتلو باندې معلق کړی دی **وَهِيَ أَتَتْ بِالْمُعَلَّقَةِ فَلَمْ يُوجَدِ الشَّرْطُ** او هغې راوړو مشيتِ معلقه، نو شرط او نه موندې شو **وَهُوَ اشْتِغَالٌ بِمَا لَا يَعْنِيهَا فَخَرَجَ الْأَمْرُ مِنْ يَدِهَا** او هغه (مشيتِ معلقه) لايعنی کار کې مشغوليدل دی. نو امر ددې د لاس نه اووتلو

تشریح:-دليل دا دې. چه خاوند دخپلې ښځې طلاق په مشيت غيرمعلقه پورې معلق کړلو. اوښځې راوړلو. مشيت معلقه. يعنی خپله خوښه ئې د خاوند په خوښه پورې معلق کړله. نود شرط نه موجودوالی د املئه طلاق نه واقع کيږی. اوښځه په يوعبث کارکې مشغوله شوه. کوم چې دليل د اعراض دې. نوځکه دهغې د لاسه اختيار اووتلو. اواختيار ورسره پاته پاتې نشو. (لايعنی کاردا دې. چه ښځې خپل مشيت د خاوند په مشيت پورې معلق کړلو)

**وَلَا يَقَعُ الطَّلَاقُ بِقَوْلِهِ شِئْتُ وَإِنْ نَوَى الطَّلَاقَ** اود سړی په قول، شئت، سره به طلاق نه واقع کيږی. اګرچه د طلاق



نيت ئې کړې وی **لِأَنَّهُ لَيْسَ فِي كَلَامِ الْمَرْأَةِ ذِكْرُ الطَّلَاقِ** ځکه چې د ښځې په کلام کې د طلاق ذکر نشته **لِيَصِيرَ الزَّوْجُ شَائِيًا طَلَاقَهَا**. چه خاوند ددې د طلاق غوښتونکې شی **وَالنِّيَّةُ لَا تَعْمَلُ فِي غَيْرِ الْمَذْكُورِ** او نيت په هغه څيزکې عمل نه کوی. کوم چې ذکر نه وی

تشریح:صاحب دهدایه(رح)فرمائی. که د ښځې د قول [إن شئت شـئت] په خواب کې که خاوند اووئيل. چه [شئت] نو طلاق نه واقع کيږی. اګرچه خاوند د طلاق نيت کړې وی.

دليل دادې. چه دښځې په کلام [شئت ان شئت] کې د طلاق ذکرنشته. چه خاوند ددې د طلاق غوښتونکې شی. اوکه ته وائې. چه خاوند د طلاق نيت کړې دی. نوموږ په خواب کې وايو. چه د نيت عمل په مذکورکې وی. په غيرمذکور کې نه وی. اودلته نه د ښځې په کلام کې طلاق ذکردې اونه د خاوند په کلام کې. په دې وجه د نيت باوجود طلاق نه واقع کيږی.

**حَتَّى لَوْ قَالَ: شِئْتُ طَلَاقَكِ** تردې که وې وئيل. ما ستا طلاق اوغوښتلو. **يَقَعُ إِذَا نَوَى** نو واقع کيږی. کله ئې چې نيت کړې **لِأَنَّهُ إِيقَاعٌ مُبْتَدَأٌ** ځکه چې (دا به) جديد واقع کول وی **إِذِ الْمَشِيئَةُ تُنْبِئُ عَنِ الْوُجُودِ، بِخِلَافِ قَوْلِهِ أَرَدْتُ طَلَاقَكِ** په دې وجه چې مشيت وجود ته خبر ورکوی. ددې په خلاف دده قول چې ما ستا د طلاق اراده اوکړله **لِأَنَّهُ لَا يُنْبِئُ عَنِ الْوُجُودِ** ځکه چې اراده د وجود خبر نه ورکوی

تشریح:- که خاوند اووئيل. [شئت طلاقك] اود طلاق نيت ئې هم کړې وی. نوطلاق به واقع کيږی. خو دطلاق واقع کيدل ددې املئه نه دی. چه خواب دې. بلکه ددې املئه دی. چه ابتداءً طلاق واقع شو.

مصنف رحمه الله فرمائی. چه په [شئت طلاقك] باندې طلاق واقع کيږی. خوپه [أردت طلاقـك] باندې طلاق نه واقع کيږی. وجه د توپير دا ده. چه شئت ماخوذ دې د شئ نه. اود شئ معنی ده موجود. نو[شئت] د [أوجـدت] په معنی کې شو. اودطلاق موجوديدل د ايقاع نه بغيرنه واقع کيږی. نوکه خاوند [شئت طلاقك] اووئيل. اود طلاق نيت ئې هم اوکړلو. نوطلاق واقع کيږی. اود ارادې معنی ده طلب. لکه چې په حديث کې دی. [الحمی رائد الموت] نواوس به د [أردت طلاقك] معنی وی. [طلبت طلاقك] اوښکاره خبره ده. چه په طلب طلاق باندې طلاق نه واقع کيږی. نوځکه په دې لفظ طلاق نه واقع کيږی.

**وَكَذَا إِذَا قَالَتْ: شِئْتُ** اوهم دغه ډول (طلاق نه واقع کيږی) کله چې ښځې اووئيل. شئت **إِنْ شَاءَ أَبِي أَوْ شِئْتُ إِنْ كَانَ كَذَا** اوغوښتل ما که زما پلار اوغوښتل. يا اوغوښتل ما که داسې وی **لِأَمْرٍ لَمْ يَجِئْ بَعْدُ لِمَا ذَكَرْنَا** (يعنی مشروط ئې کړل) په داسې امر باندې، کوم چې تراوسه پورې نه دې موجود شوې. په هغه وجه کوم چې موږ ذکر کړې ده **أَنَّ الْآتِيَ بِهِ مَشِيئَةٌ مُعَلَّقَةٌ** چې دې کوم مشيئت راوړلې دې. هغه مشيت معلقه دې **فَلَا يَقَعُ الطَّلَاقُ وَبَطَلَ الْأَمْرُ** نو طلاق به نه واقع کيږی. او امر بالید باطل شو

تشریح:- که ښځې [أنت طالق إن شئت] په خواب کې اووئيل. [شئت إن شاء أبي يا شئت إن كـان كـذا] يعنی په داسې څيزپورې ئې معلق کړلو. چه هغه لاتراوسه موجود نه وی. نوپه دې صورت کې به هم طلاق نه واقع کيږی. دليل وړاندې تيرشوې دې. چه ښځې مشيت معلقه راوړلو. حالانکه طلاق مشيت مرسله غيرمعلقه دې. اوپه لايعنی کارکې د مشغوله کيدو په وجه د ښځې اختيار ختم شو.

**وَإِنْ قَالَتْ: قَدْ شِئْتُ إِنْ كَانَ كَذَا** او که ښځې اووئيل. ما اوغوښتل که داسې وی **لِأَمْرٍ قَدْ مَضَى** يعنی مشروط ئې کړو په داسې امر سره کوم چې تير شو **طَلُقَتْ** نو طلاق به واقع کيږی **لِأَنَّ التَّعْلِيقَ بِشَرْطٍ كَائِنٍ تَنْجِيزٌ** ځکه چې په داسې شی باندې معلق کول کوم چې اوشو. تنجيز دې. (تعليق نه دې).

تشریح:- که ښځې د سړی د کلام په خواب کې اووئيل. [شئت إن كان كذا] يعنی په داسې څيزپورې ئې معلق کړلو. کوم چې په تيره شوې زمانه کې واقع شوې وی. نوطلاق به واقع کيږی. ځکه چې طلاق په داسې شی

پورې معلق کول کوم چې د شرط نه وړاندې موجود وی .دې ته طلاق منجز وائی .لکه چې یوکس اووائی .[أنت طالق إن كان السماء فوقنا] نوپه دې صورت کې طلاق منجزیعنی في الحال واقع کیږی .

## د [أنت طالق إذا شئت وغيره] احکام

وَلَوْقَالَ لَهَا: أَنْتِ طَالِقٌ إِذَا شِئْتِ أَوْإِذَامَا شِئْتِ أَوْمَتَى شِئْتِ أَوْمَتَى مَا شِئْتِ اوکه ښځې ته ئې اووئیل،انت طالق اذا شئت، یا انت طالق اذا ماشئت، یا انت طالق متی شئت، یا انت طالق متی ما شئت فَرَدَّتِ الْأَمْرَ بیا ښځې امر ( د تفویض) رد کړو لَمْ يَكُنْ رَدًّا وَلَا يَقْتَصِرُ عَلَى الْمَجْلِسِ نودا به رد نه وی .اونه به په مجلس باندې منحصر وی

تشریح:-صورت د مسئلې دا دې.چه خاوند خپلې ښځې ته اووئیل.[أنت طالق إذا شئت] یا ئې ورته د [إذا] په ځائې [إذا ما، یا،متى، یا متى ما] استعمال اوکړل.بیا ښځې دا امرباليد رد کړلو.نودا نه رد کیږی .بلکه ددې نه روسته هم ښځه خپل ځان ته طلاق ورکولې شی .اوپه اجماع سره دا امرد مجلس پورې خاص نه دې.بلکه که ښځه دمجلس نه پاسیدله.یا ئې په بل کارکې پیل اوکړه.نوبیا هم دا خپل ځان ته طلاق ورکولې شی .

أَمَّا كَلِمَةُ مَتَى وَمَتَى مَا فَلِأَنَّهُمَا لِلْوَقْتِ بهرحال کلمه د،متی ،اود،متی ما، نو ځکه چې هغه د وخت لپاره دی وَهِيَ عَامَّةٌ فِي الْأَوْقَاتِ كُلِّهَا او هغه د ټولو وختونو لپاره عام دې كَأَنَّهُ قَالَ فِي أَيِّ وَقْتٍ شِئْتِ گویا چې وې وئیل،في اى وقت شئت، فَلَا يَقْتَصِرُ عَلَى الْمَجْلِسِ بِالْإِجْمَاعِ نو بالاتفاق به په مجلس باندې منحصر نه وی وَلَوْرَدَّتِ الْأَمْرَ لَمْ يَكُنْ رَدًّا اوکه ( ښځې) ردکړو.نو رد به نه وی لِأَنَّهُ مَلَّكَهَا الطَّلَاقَ فِي الْوَقْتِ الَّذِي شَاءَتْ ځکه چې خاوند دا په داسې وخت کې د طلاق مالکه جوړه کړې ده.په کوم چې هغه اوغواړی فَلَمْ يَكُنْ تَمْلِيكًا قَبْلَ الْمَشِيئَةِ حَتَّى يَرْتَدَّ بِالرَّدِّ نود مشیت نه وړاندې د طلاق تملیك اونشو.تردې چې په رد کاوه سره رد شی

تشریح:صاحب دهدایه رحمه الله په ذکرشوو صورتونوکې د امرباليد کیفیت بیانوی .نوفرمائی . چې کلمه د [متى او متى ما] د وخت لپاره راځی .اودا ټولووختونوته عام ده.لکه چې سړی ورته ووئیلی وی .[أنت طالق في اى وقت شئت] نود عموم وخت د امله به په مجلس پورې منحصرنه وی .اوکه ښځې دا اختيارردکړلو.نونهٔ رد کیږی . ځکه چې سړی ښځې ته په هرهغه وخت کې دطلاق اختياروركړې دې.په کوم وخت کې چې هغه اوغواړی .نو دغوښتلونه وړاندې د طلاق مالك جوړول متحقق کیږی نه.اوددې د ښځې په رد کولوسره رد کیږی نه.اوپه دې صورت کې ښځه ځان ته یوطلاق ورکولې شی .دلیل دا دې.چه کلمه د [متى او متى ما] د زمانې د عموم لپاره ده.دعموم د افعالو لپاره نه ده.نودې ښځې ته د زمانې د عموم د امله د یوطلاق نه روسته د بل طلاق اختيارنشته.

وَلَا تُطَلِّقُ نَفْسَهَا إِلَّا وَاحِدَةً او ښځه خپل نفس ته طلاق نشی ورکولې.خو یو لِأَنَّهَا تَعُمُّ الْأَزْمَانَ دُونَ الْأَفْعَالِ ځکه چې کلمه د،متی ، د زمانو لپاره عام ده.د افعالو لپاره ( عام) نه ده فَتَمْلِكُ التَّطْلِيقَ فِي كُلِّ زَمَانٍ نو ښځه به په هره زمانه کې د تطليق مالکه وی وَلَا تَمْلِكُ تَطْلِيقًا بَعْدَ تَطْلِيقٍ اود یو طلاق نه روسته به د دوهم طلاق ور کاوه مالکه نه وی

تشریح:صاحب دهدایه رحمه الله په ذکرشوو صورتونوکې د امرباليد کیفیت بیانوی .نوفرمائی . چې کلمه د [متى او متى ما] د وخت لپاره راځی .اودا ټولووختونوته عام ده.لکه چې سړی ورته ووئیلی وی .[أنت طالق في اى وقت شئت] نود عموم وخت د امله به په مجلس پورې منحصرنه وی .اوکه ښځې دا اختيارردکړلو.نونهٔ رد کیږی . ځکه چې سړی ښځې ته په هرهغه وخت کې دطلاق اختياروركړې دې.په کوم وخت کې چې هغه اوغواړی .نو دغوښتلونه وړاندې د طلاق مالك جوړول متحقق کیږی نه.اوددې د ښځې په رد کولوسره رد کیږی نه.اوپه دې صورت کې ښځه ځان ته یوطلاق ورکولې شی .دلیل دا دې.چه کلمه د [متى او متى ما] د



زمانې د عموم لپاره ده.دعموم د افعالو لپاره نه ده.نودې ښځې ته د زمانې د عموم د امله د یوطلاق نه روسته د بل طلاق اختيارنشته.

وَأَمَّا كَلِمَةُ إِذَا وَإِذَا مَا او پاتې شوه کلمه د ،اذا،او ،اذا ما فَهُمَا وَمَتَى سَوَاءٌ عِنْدَهُمَا نو هغه او متی دواړه برابر دی د صاحبينو رحمهما الله په نيز.وَعِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحْمَةُ اللَّهِ تَعَالَى عَلَيْهِ وَإِنْ كَانَ يُسْتَعْمَلُ لِلشَّرْطِ كَمَا يُسْتَعْمَلُ لِلْوَقْتِ اود ابوحنيفه رحمه الله په نيز اګرچه دشرط لپاره استعماليږی .لکه څنګه چې د وخت لپاره استعماليږی لَكِنَّ الْأَمْرَ صَارَ بِيَدِهَا خو امر باليد دده په لاس کې شو فَلَا يَخْرُجُ بِالشَّكِّ وَقَدْ مَرَّ مِنْ قَبْلُ نود شك په وجه به نه اوځی .او( دا بحث) وړاندې تیر شوې دې.

تشریح:پاتې شوه کلمه د [إذا او إذا ما]نودا او [متى ] د صاحبينو رحمهما الله په نيزدواړه برابردی .نوکوم حکم چې د متی وو. هم هغه حکم به د [إذا اود إذا ما] وی .اودامام ابوحنيفه رحمه الله په نيزچه [إذا او إذا ما] لکه څنګه د وخت دعموم لپاره استعماليږی .دغه ډول د شرط لپاره هم استعماليږی .نود شرط لپاره استعمال دا تقاضا کوی .چه په دې صورت کې اختيارد مجلس سره خاص وی .اود وخت لپاره ددې استعمال دا تقاضا کوی .چه په کوم وخت کې ئې خوښه شی .نوځان ته طلاق ورکولې شی .اود ښځې په لاس کې د اختياروجود يقينی دې.نود شك په وجه به اختياردې دلاس نه نهٔ اوځی .

## د [أنت طالق كلما شئت] حکم

أنت طالق کلما شئتوَلَوْقَالَ لَهَا: أَنْتِ طَالِقٌ كُلَّمَا شِئْتِ اوکه ( سړی ) ښځې ته اووئيل.ته طالقه ئې.کله هم چې ته اوغواړې فَلَهَا أَنْ تُطَلِّقَ نَفْسَهَا وَاحِدَةً بَعْدَ وَاحِدَةٍ حَتَّى تُطَلِّقَ نَفْسَهَا ثَلَاثًا نود ښځې لپاره جائز دی .چه خپل ځان ته د یو نه روسته بل( طلاق) ورکړی .تردې چې خپل ځان ته درې طلاقه ورکړی

تشریح:- مسئله دا ده.که سړی خپلې ښځې ته اووئیل.[أنت طالق كلما شئت] نوښځې ته اختيار دې.چه هغه بلا ناغه ځان ته طلاق ورکړی .تردې چې درې پوره کړی .

لِأَنَّ كَلِمَةَ كُلَّمَا تُوجِبُ تَكْرَارَ الْأَفْعَالِ ځکه چې کلمه د،کلما، د افعالو د تکرار موجب دې

تشریح:- دلیل دا دې.چه کلمه د [كلما]موجب د تکرارد فعل ده.اوپه دې باندې دليل آيت ((كُلَّمَا نَضِجَتْ جُلُودُهُمْ)) دې.نوهرکله چې داسې ده.نوښځې ته بلا ناغه ځان ته د طلاق ورکولواختياردې.

إِلَّا أَنَّ التَّعْلِيقَ يَنْصَرِفُ إِلَى الْمِلْكِ الْقَائِمِ خودا چې تعليق موجود ملك اړخ ته واپس کیږی . حَتَّى لَوْعَادَتْ إِلَيْهِ بَعْدَ زَوْجٍ آخَرَ تردې که ښځه رومبی خاوند ته واپس راغله.د دوهم خاوند نه روسته فَطَلَّقَتْ نَفْسَهَا او هغې خپل ځان ته طلاق ورکړو لَمْ يَقَعْ شَيْءٌ نو هيڅ طلاق به نه واقع کیږی لِأَنَّهُ مِلْكٌ مُسْتَحْدَثٌ ځکه چې دا ملك جديد دې

تشریح:- دا عبارت د یومقدر سوال ځواب دې.سوال دا دې.چه هرکله د [كلما] کلمه موجب د تکرارد فعل ده.نوکه دې ښځې درې طلاقه واقع کړل.اوبیا ئې د بل خاوند سره نکاح اوکړله.اود دوهم خاوند د طلاق نه روسته که دا ښځه د اول خاوند سره بیا نکاح اوکړی .نوپکارده چې دې ښځې ته بیا د طلاق واقع کاوه اختياروی . حالانکه داسې نه ده.

ځواب دا دې.چه تعليق موجوده ملك اړخ ته واپس کیږی .یعنی خاوند هغه طلاقونه ښځې ته سپارلی وو.کوم چې په هغه وخت کې دهغه په ملکيت کې موجود وو.اوکه د دوهم خاوند د طلاق نه روسته که دا ښځه بیرته دده په نکاح کې راشی .اودا خپل ځان ته بیا طلاق ورکړی .نودا طلاق نه واقع کیږی .ځکه چې دا ملك خود نوې نکاح په ذريعه ده ته حاصل شوې دې.نوښځې ته دا اختيارنشته.چه په یوه کلمه سره ځان ته درې درې طلاقونه ورکړی .

وَلَيْسَ لَهَا أَنْ تُطَلِّقَ نَفْسَهَا ثَلَاثًا بِكَلِمَةٍ وَاحِدَةٍ اود ښځې لپاره جائز نه دی .چه هغه خپل ځان ته په کلمه واحده

کي درې طلاقه ورکړی لِأَنَّهَا تُوجِبُ عُمُومَ الْإِنْفِرَادِ لَا عُمُومَ الْإِجْتِمَاعِ ځکه چې لفظ د، کلما، د افرادو د عموم موجب دي.د اجتماع د عموم موجب نه دي فَلَا تَمْلِكُ الْإِيقَاعَ جُمْلَةً وَجَمْعًا نوهغه د یوځل او په جمع کاوه سره د واقع کاوه مالکه نه ده.

تشریح:- د ښځي لپاره جائز نه دی .چه هغه خپل خان ته په کلمه واحده کي درې طلاقه ورکړی دلیل دا دې.چه کلمه د [کلما] د وخت د عموم لپاره ده.د عموم اجتماع لپاره نه ده.نوښځې ته به په یوځل اوپه جمع باندې د طلاق واقع کولواختیار نه وی .

①دبعضي حضراتوخیال دې.چه جملتاً اوجمعاً د دواړو یوه معنی ده.اودبعضي رائې ده.چه جمله دا ده.چه ښځه اووائی .[طلقت نفسی ثلاثاً] اوجمع دا ده.چه ښځه اووائی .[طلقت نفسی واحدة وواحدة] دا قول اظهردې.(عنایه)

## د[انت طالق حیث شئت] وغیره احکام

وَلَوْ قَالَ لَهَا: أَنْتِ طَالِقٌ حَيْثُ شِئْتِ أَوْ أَيْنَ شِئْتِ اوکه ښځې ته ئې اوونیل.ته طالقه ئې.چرته چې ته غواړې.یا کوم ځائې چې ته غواړې لَمْ تَطْلُقْ حَتَّى تَشَاءَ نو طلاق به نه واقع کیږی .تردې چې دغه ( ښځه) اوغواړی

تشریح:- صورت د مسئلې دا دې.چه خاوند خپلې ښځې ته اووائی .[انت طالق حیث شئت یا انت طالق این شئت] نوپه دې باندې طلاق نه واقع کیږی .تردې چې هغه ښځه خپل طلاق اوغواړی .اوکه دا د مجلس نه پاسیدله.نوخیارئې ختم شو.

وَإِنْ قَامَتْ مِنْ مَجْلِسِهَا اوکه دغه ښځه د مجلس نه پاسیدله فَلَا مَشِيئَةَ لَهَا نود هغې لپاره مشیت نشته

تشریح:-اود مجلس د پاسیدونه روسته ددې ښځې اختیارپاته نه پاتې کیږی .لکه څنګه چې د[انت طالق إن شئت] په صورت کي په قیام عن المجلس سره خیارپاته نه پاتې کیږی .

①دلته یوسوال دې.هغه دا چې هرکله په ذکرشوې مسئله کي د مکان ذکرلغوشو.او[انت طالق إن شئت] پاته پاتې شو.نوچه څنګه په [انت طالق إن دخلت الدار] کي في الحال طلاق واقع کیږی .یکارده چې دغه ډول په [انت طالق إن شئت] کي هم في الحال طلاق واقع شي .ځکه چې حرف شرط په کي نشته.نوپه دې کي دواړه برابردی .

①ځواب دا دې.چه [حیث اواین] دواړه مفید دتاخیردی .اګرچه لږ ساعت وی .اوحرف شرط هم مفید د تاخیر دې.نود تاخیرمعنی ثابتولوکي دواړه برابردی .ددې مناسبت په وجه [حیث اواین] دواړه په [إن] شرطیه باندې حمل کړې شول.نو[انت طالق حیث شئت اواین شئت] معنی به وی .چه [انت طالق إن شئت] اود [إن شئت] په صورت کي طلاق في الحال نه واقع کیږی .نوځکه به دلته په دې مسئله کي في الحال طلاق نه واقع کیږی .بلکه د مشیت د شرط نه روسته به طلاق واقع کیږی .

①خوکه څوك سوال اوکړی .چه [حیث او این] په [إن] شرطیه باندې ولې حمل کړې شول؟په [إذا] وغیره باندې ولې حمل نکړې شول.ځواب دا دې.چه [إن] په باب دشرط کي اصل دې.اوداصل اعتبارد نوروپه مقابله کي غوره اومناسب دی.نوځکه ددې په معنی باندې حمل کړې شول.

لِأَنَّ كَلِمَةَ حَيْثُ وَأَيْنَ مِنْ أَسْمَاءِ الْمَكَانِ ځکه چه،حیث، او،این، د اسمائي مکان ځني دی وَالطَّلَاقُ لَا تَعَلُّقَ لَهُ بِالْمَكَانِ اود طلاق هیڅ تعلق په هیڅ یو ( خاص) مکان کي نشته فَيَلْغُو نو( د مکان ذکر به) لغو وی وَيَبْقَى ذِكْرُ مُطْلَقِ الْمَشِيئَةِ فَيَقْتَصِرُ عَلَى الْمَجْلِسِ اود مطلق مشیئت ذکر به پاته پاتې وی .د مشیت په مجلس به [..]ر وی .



تشریح:- دلیل دا دې.چه [حیث اواین] صیغه د اسم ظرف مکان ده.اوطلاق په ځائې پورې متعلق نه وی .نوکه په یوځائې پورې طلاق مقید کړی .هغه طلاق به په ټولوځایونوکي واقع کیږی .داسې نه ده.چه په هغه خاص ځائې کي به واقع کیږی .نود ځائې ذکرلغو شو.اومطلق مشیت پاته پاتې شو.لکه چې خاوند خپلې ښځې ته اوونیل.چه [انت طالق إن شئت]

بِخِلَافِ الزَّمَانِ په خلاف دزمانې لِأَنَّ لَهُ تَعَلُّقًا بِهِ ځکه چې زمانې سره د طلاق تعلق دې حَتَّى يَقَعَ فِي زَمَانٍ دُونَ زَمَانٍ چې په یو زمانې کي به واقع کیږی . نه په بله زمانه کي فَوَجَبَ اعْتِبَارُهُ عُمُومًا وَخُصُوصًا نود خصوص او عموم په اعتبار سره د زمانې اعتبار واجب دې.

تشریح:- صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی .چه د زمانې حکم د مکان دحکم نه مختلف دې.ځکه چې طلاق زمانې سره متعلق کیداې شی .چه په یوه زمانه کي طلاق واقع شی .اوپه بله کي واقع نشی .نود زمانې دتخصیص اعتباربه کولې شی .مثلاً په [انت طالق غداً] کي به غداً مخصوص وی .اوپه [انت طالق في اىّ وقت شئت] کي به عموم ملحوظ وی .والله اعلم .

## د [انت طالق کیف شئت] حکم

وَإِنْ قَالَ لَهَا أَنْتِ طَالِقٌ كَيْفَ شِئْتِ اوکه ښځې ته ئې اوونیل.ته طالقه ئې.څنګه چې ته غواړې طَلُقَتْ تَطْلِيقَةً تَمْلِكُ الرَّجْعَةَ نو یوطلاق واقع کیږی او مالک د رجعت ګرزی وَمَعْنَاهُ قَبْلَ الْمَشِيئَةِ معنی ئې داده مشیئت نه وړاندې فَإِنْ قَالَتْ: قَدْ شِئْتُ وَاحِدَةً بَائِنَةً أَوْ ثَلَاثًا نوکه ښځې اوونیل.ما یو بائنه اوغوښتل.یا درې ( اوغوښتل) وَقَالَ الزَّوْجُ ذَلِكَ نَوَيْتُ او خاوند اوونیل.ما ددې نیت کړې دې فَهُوَ كَمَا قَالَ نودا داسې ده.لکه څنګه چې خاوند اوونیل لِأَنَّ عِنْدَ ذَلِكَ تَثْبُتُ الْمُطَابَقَةُ بَيْنَ مَشِيئَتِهَا وَإِرَادَتِهِ ځکه چې دې وخت به د ښځې مشیئت اود خاوند په ارادې کي مطابقت ثابت شی

تشریح:- صورت دمسئلې دا دې.که خاوند خپلې ښځې ته [انت طالق کیف شئت] اوونیل.نودښځې د غوښتلونه وړاندې یوطلاق واقع کیږی .نوکه ښځې یوطلاق بائن اوغوښتلو.یا ئې درې طلاقه اوغوښتل.او خاوند دهغې نیت کړې وی .نوهغه به واقع کیږی . دلیل دا دې چې په دې صورت کي د ښځې په مشیئت او د خاوند په اراده کي موافقت راغلونو حکم به فائده کوی چې وقوع د طلاق دې.

أَمَّا إِذَا أَرَادَتْ ثَلَاثًا وَالزَّوْجُ وَاحِدَةً بَائِنَةً أَوْ عَلَى الْقَلْبِ بهرحال کله چې ښځې د دریو اراده اوکړله.او خاوند د یو بائنه اراده اوکړله.یا برعکس تَقَعُ وَاحِدَةٌ رَجْعِيَّةٌ نو یو رجعی به واقع کیږی لِأَنَّهُ لَغَا تَصَرُّفُهَا لِعَدَمِ الْمُوَافَقَةِ ځکه چې د عدم موافقت په وجه د ښځې تصرف لغو شو فَبَقِيَ إِيقَاعُ الزَّوْجِ نود خاوند واقع کیدل پاته پاتې شو

تشریح:- په ذکرشوی صورت کي که په دواړوکي اختلاف وی .مثلاً ښځې بائن اوغوښتلو.او خاوند درې طلاقه اوغوښتل.نویا ددې په عکس نوپه ښځه به صرف یوطلاق رجعی واقع کیږی .ځکه چې د عدم موافقت په وجه به د ښځې تصرف لغو وی .اود خاوند واقع کول به پاته وی .

وَإِنْ لَمْ تَحْضُرْهُ النِّيَّةُ اوکه خاوند سره نیت موجود نه دې.( یعنی خاوند نیت نه دې کړې) تُعْتَبَرُ مَشِيئَتُهَا فِيمَا قَالُوا جَرْيًا عَلَى مُوجِبِ التَّخْيِيرِ نود ښځې د مشیئت اعتبار به کولې شی .د فقهاؤ په قول کي د تخییر په موجب باندې عمل کاوه سره

تشریح:- په ذکرشوی صورت کي که خاوند د څه نیت نه وی کړې.نوپه کم اوکیف کي به دښځې مشیت معتبر وی .متاخرینو رحمهم الله فقهاؤ په نیزد تخییرموجب هم دا دې.

قَالَ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالَى عَنْهُ وَقَالَ فِي الْأَصْلِ هٰذَا قَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ (١) مصنف رحمة الله فرمائي .چه امام محمد رحمه الله په مبسوط کې فرمائي .چه دا د ابوحنيفه رحمه الله قول دې

تشريح:- امام محمد رحمه الله په مبسوط کې فرمائیلي دي .چه دا دامام ابوحنيفه رحمه الله قول دې.

وَعِنْدَهُمَا لَا يَقَعُ مَا لَمْ تُوقِعِ الْمَرْأَةُ اود صاحبينو رحمهما الله په نيز نه واقع کيږي .ترکومه پورې نې چې ښځه واقع نه کړي فَتَشَاءُ رَجْعِيَّةً أَوْ بَائِنَةً أَوْ ثَلَاثًا نو هغه چې کوم غواړي .رجعي وي .اوکه بائنه وي .او که درې وي وَعَلَى هٰذَا الْخِلَافِ الْعَتَاقُ اوهم په دې اختلاف باندې عتاق دې

تشريح:- صاحبين رحمهما الله فرمائي .چه په[أنت طالق كيف شئت] سره طلاق نه واقع کيږي .نه د دخول نه وړاندې اونه پس.تردې چې ښځه اوغواړي .لکه چې دصاحبينو رحمهما الله په نيزاصل طلاق دښځې په مشيت پورې معلق دي.

لَهُمَا أَنَّهُ فَوَّضَ التَّطْلِيقَ إِلَيْهَا عَلَى أَيِّ صِفَةٍ شَاءَتْ د صاحبينو رحمهما الله دليل دادې.چه ( خاوند) تطليق ( طلاق واقع کول) ښځې ته سپارلي دې.په کوم صفت چې غواړي فَلَا بُدَّ مِنْ تَعْلِيقِ أَصْلِ الطَّلَاقِ بِمَشِيئَتِهَا نود ښځې په مشيئت باندې د اصل طلاق معلق کول ضروري دي لِتَكُونَ لَهَا الْمَشِيئَةُ فِي جَمِيعِ الْأَحْوَالِ: أَعْنِي قَبْلَ الدُّخُولِ وَبَعْدَهُ چې ددې لپاره په ټولو احوالوکې مشيئت اوشي .يعنی قبل الدخول او بعد الدخول

تشريح:- دصاحبينو رحمهما الله دليل دا دې.چه خاوند تطليق (طلاق واقع کول) ښځې ته سپارلي دې.چه په کومه طريقه هغه غواړي .ځکه چې لفظ د كيف مطلقاً د سوال عن الحال لپاره راځي .نواصل طلاق دښځې په مشيت پورې معلق کول ضروري دي .چه دې ته په ټولوحالاتوکې مشيت ثابت شي .د دخول نه وړاندې او روسته هم.

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ أَنَّ كَلِمَةَ كَيْفَ لِلِاسْتِيصَافِ، يُقَالُ كَيْفَ أَصْبَحْتَ اود ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې.چه كلمه د كيف د وصف د طلب لپاره ده.وئيلې شي ،كيف اصبحت،( په کوم صفت سره سهار کړو تا) وَصْفُهُ يَسْتَدْعِي وُجُودَ أَصْلِهِ او تفويض په وصف د طلاق کې تقاضا کوي .د اصل طلاق موجود کيدلو وَالتَّفْوِيضُ فِي الطَّلَاقِ بِوُقُوعِهِ اود طلاق وجود ددې په وقوع سره کيږي . وَوُجُودُ

تشريح:- دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې.چه كلمه د ،كيف،د وصف دطلب لپاره راځي .د اصل د طلب لپاره نه راځي .وئيلې شي .[كيف أصبحت] يعنی په کوم صفت دې سهار کړلو.په صحت که په بيمارۍ.نومعلومه شوه.چه تفويض دطلاق په وصف کې دې.اود طلاق په وصف کې تفويض داصل طلاق د وجود تقاضا کوي .اوداصل طلاق وجود بغير د وقوع نه نه راځي .نوځکه امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائيلي دي .چه اصل طلاق خو د مشيت نه وړاندې واقع شو.چه ددې نه روسته د طلاق وصف طلب کړې شي .

ﷺدلته يواشکال دې.هغه دا چې په دې مسئله کې د خاوند نيت ته پکاردا وه چې څه اعتبار نه وو.ځکه چې کله ئې ښځې ته اختياورکړلو.نوهغه د هغه څيزپه ثابتولوکې مستقل شوه.کوم چې هغې ته حواله شوې دي.لکه څنګه چې په نورو ټولو تفويضاتوکې ښځې ته اختياروي .د خاوند د نيت حاجت نه وي .

ﷺځواب،په دې مسئله کې ښځې ته طلاق سپارلې شوې دې.اودطلاق حال په کم اوکيف کې مشترک دې.يعنی په عدد اوبينونت کې مشترک دې.نوپه دې کې د يودمتعين کاوه لپاره د نيت اړتيا پيښيږي .(عنايه).

(١) القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في الكفاية (٣\٤٣٨) وفتح القدير(٣\٤٣٨) والدر المختار(٢\٥٣٢) والبحر الرائق (٣\٥٩١) نقلاً عن القول الراجح (١\٣٣٠)-



## د [أنت طالق كم شئت اوما شئت] حكم

وَإِنْ قَالَ لَهَا: أَنْتِ طَالِقٌ كَمْ شِئْتِ أَوْ مَا شِئْتِ اوکه ( خاوند) ښځې ته اووئيل.ته طالقه ئې.څومره چې ته غواړې.يا کوم څه چې ته غواړې طَلَقَتْ نَفْسَهَا مَا شَاءَتْ نو ښځه چې خپل نفس ته څومره طلاقونه غواړي .وردې کړي

تشريح:- صورت دمسئلې دا دې.چه خاوند خپلې ښځې ته اووائي .[أنت طالق كم شئت يا أنت طالق ماشئت] نو ښځې ته اختياردې.که يوطلاق اختياروي اوکه دوې [دوه] اوکه درې هغه به واقع کيږي .چه ترڅود مجلس نه پاسيدلې نه وي . لنډيز دا ده.چه په دې صورت کې په اتفاق سره اصل طلاق دښځې په مشيت پورې معلق دي.

لِأَنَّهُمَا يُسْتَعْمَلَانِ لِلْعَدَدِ ځکه چې ( لفظ د)،کم،او،ما، دواړه د عدد لپاره استعمالولې شي فَقَدْ فَوَّضَ إِلَيْهَا أَيَّ عَدَدٍ شَاءَتْ نو سرې ښځې ته اوسپارل.چه څومره غواړې.( طلاقونه) ورکړه

تشريح:- دليل دا دې.چه د ،کم،او،ما،حرف د عدد لپاره استعماليږي .لکه چې خاوند خپلې ښځې ته دطلاق عدد اوسپارل.نودهغې خوښه ده.که يوخوښوي که دوې [دوه] اوکه درې.

دلته يوسوال کيداې شي .چه لفظ د کم خود عدد لپاره استعماليږي .خولفظ د ،ما،لکه څنګه چې دعدد لپاره استعماليږي .دغه ډول د وخت لپاره هم راځي .دالله تعالى ارشاد دې.﴿مَا دُمْتُ حَيًّا﴾ (ما کې لفظ د ،ما،د وخت لپاره دې.نوپه عدد سپارلوکې شک واقع شو.نود شک د امله به عدد نه ثابتيږي .

ﷺځواب،اګرچه لفظ د ،ما،د عدد اووخت دواړو لپاره استعماليږي .خود عدد ته يو ډول ترجيح حاصله ده.هغه دا چې تفويض دتمليك معنى ثابتوي .اوتمليكات په مجلس پورې خاص وي .اوپه مجلس پورې مقيد کيدل په هغه وخت کې ثابتيږي .چه ما د عدد لپاره وي .نه چې د وخت دپاره.

فَإِنْ قَامَتْ مِنَ الْمَجْلِسِ بَطَلَ نو که هغه د مجلس نه پاسيدله.نو امر باليد باطل شو وَإِنْ رَدَّتِ الْأَمْرَ كَانَ رَدًّا اوکه ښځې امر باليد رد کړو.نو رد به وي لِأَنَّ هٰذَا أَمْرٌ وَاحِدٌ ځکه چې دا امر واحد دې ،) وَهُوَ خِطَابٌ فِي الْحَالِ اودا خطاب هم فى الحال دې فَيَقْتَضِي الْجَوَابَ فِي الْحَالِ ( نو ځواب هم فى الحال غواړي ).

تشريح:- که ښځه د مجلس نه پاسيدله.نود دې اختيارباطل شو.ځکه چې قيام دليل د اعراض دې.اوکه دې رد کړلو.نورد به وي .ځکه چې دا امرواحد دې.اوپه دې کښې داسې څه نشته.چه په تکراردلالت کوي .نود امر واحد په قيد سره د ،کلما،د کلمې نه احتراز راغلو.ځکه چې کلمه د ،کلما،په تکراردلالت کوي .اوچونکه دا امرواحد دې.نوځکه ځواب د واحد تقاضا کوي .چه ځواب د سوال سره موافق شي .اودا ځواب واحد في الحال پکاردې.ځکه چې دده په کلام کې داسې څه نشته.چه هغه په عموم دوخت باندې دلالت کوي .نوفى الحال دځواب د قيد په ذريعه د [إذا اومتى] د الفاظونه احتراز راغلو.ځکه چې دواړه حرفونه د وخت لپاره راځي .

## د [طلقي نفسك من ثلاث ما شئت] حكم

وَإِنْ قَالَ لَهَا: طَلِّقِي نَفْسَكِ مِنْ ثَلَاثٍ مَا شِئْتِ اوکه ښځې ته ئې اووئيل.ته خپل نفس ته په دريو کې چې څومره غواړې.طلاق ورکړه فَلَهَا أَنْ تُطَلِّقَ نَفْسَهَا وَاحِدَةً أَوْ ثِنْتَيْنِ نو ښځې ته به اختيار وي .چه هغه ( په مجلس کې دننه) خپل نفس ته يو يا دوې [دوه] طلاقه ورکړي وَلَا تُطَلِّقُ ثَلَاثًا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ (١) او درې طلاقه نشي

(١) القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في الدر المختار(٢\٥٣٣) والبحر الرائق (٣\٥٩٢) والهندية (١\٤٠٧) وتبيين الحقائق

ورکولي.( دا) د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دی

تشریح:- صورت د مسئلې دا دي.چه خاوند خپلې ښځې ته اووائی .[طلقی نفسك من ثلاث ما شئت] ① نو دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزدې ته اختيار دي.که خان ته يو طلاق ورکوی اوکه دوه.د درې واقع کولو اجازت ورته نشته

وَقَالَا: تُطَلِّقُ ثَلَاثًا إِنْ شَاءَتْ او صاحبين رحمهما الله فرمائی .که ښځه اوغواړی .نو درې طلاقه ور کولای شی لِأَنَّ كَلِمَةَ مَا مُحْكَمَةٌ فِي التَّعْمِيمِ څکه چې لفظ د ما په تعميم کې قطعی دې وَكَلِمَةَ مَنْ قَدْ تُسْتَعْمَلُ لِلتَّمْيِيزِ او کلمه د من کله د تميز لپاره استعمالولې شی فَيُحْمَلُ عَلَى تَمْيِيزِ الْجِنْسِ.( نو دلته) د جنس په تميز به محمول وی . كَمَا إِذَا قَالَ لکه کله نې چې اووئيل كُلْ مِنْ طَعَامِي مَا شِئْتَ أَوْ طَلِّقْ مِنْ نِسَائِي مَنْ شَاءَتْ او خوره زما د خوراك نه څه چې ته غواړې.یا زما په ښځو کې چې څوك طلاق غواړی .هغې ته ورکړه

تشریح:- اوصاحبينو رحمهما الله په نيزورته د درې طلاقو ورکولو اختيار شته. دليل دا دې.چه کلمه د ،ما، دتعميم لپاره راځی .اوکلمه د ،من، کله د تميز لپاره راځی .لکه دالله تعالی په ارشاد [فَاجْتَنِبُوا الرِّجْسَ مِنَ الْأَوْثَانِ] کې اوکله د تبعيض لپاره راځی .اوکله ددې دواړونه سوا د بلې معنی دپاره.نو دخاوند په کلام کې محکم اومحتمل دواړه جمع شول.اودقاعدې مطابق محتمل به په محکم باندې حمل کولې شی .او،من، به بيانيه شی .اوس به مطلب دا شی .چه ته خپل ځان ته چې څومره دې خوښه وی .طلاق ورکولې شې.يعنی درې طلاقه ور کاوه پورې ورته اختيار دي.

اودا داسې ده.لکه چې يو کس اووائی .زما د خوراك نه چې څومره غواړې.اوخوره.دلته کې اجازت عام دې.که پوره خوری اوکه بعضې خوری .اودغه ډول که خاوند چاته اووئيل.په ښځو کې هغه چاته طلاق ورکړه.څوك چې طلاق غواړی .نوپه دې صورت کې که ټولې ښځې دخپل خپل طلاق خواهش اوکړی .نولکه څنگه چې په دې دواړو صورتونو کې کلمه د ،من،په تبعيض باندې نشی حمل کولې.بلکه په بيان باندې حمل کړې شوې دي.نودغه ډول به د کتاب په مسئله کې هم په لفظ د ،من، په بيان باندې حمل کولې شی .

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله أَنَّ كَلِمَةَ مِنْ حَقِيقَةٌ لِلتَّبْعِيضِ اود ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې.چه کلمه د من تبعيض لپاره حقيقت دې وَمَا لِلتَّعْمِيمِ او کلمه د ما تعميم لپاره ده فَيُعْمَلُ بِهِمَا نو په دواړو به عمل کولای شی

تشریح:-دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې.چه کلمه د ،من، په تبعيض کې حقيقت دې.اوکلمه د ما په تعيمم کې حقيقت دې.اوپه دواړو باندې عمل کول هم ممکن دی .په دې طريقه چې بعضې عام مراد واخستې شی .اود دوو عدد هم داسې دې.څکه چې په يو اعتبار سره د دووعدد عام دې.اود درې په اعتبار سره بعضې دې.

اوخوپه دې تقرير باندې يو اعتراض دې.هغه دا چې د بعضې عام کيدل په يو عدد باندې نه صادقيږی .څکه چې يو عدد بعضې خودې.خو عام نه دې.

اوځواب دا چې يوته به دلالتاً گډ وی .په دې طريقه چې ښځې ته د دوو طلاقونو واقع کولو اختيار روی .نو د يو واقع کولو اختيار به ورته خامخا حاصل وی .بهرحال هرکله چې په تبعيض اوتعميم دواړو باندې عمل کول ممکن وو.نوپه دواړو کې به يو هم نشی پريخودلې.

وَفِيمَا اسْتَشْهَدَا بِهِ تُرِكَ التَّبْعِيضُ بِدَلَالَةِ إِظْهَارِ السَّمَاحَةِ أَوْ لِعُمُومِ الصِّفَةِ او صاحبينو رحمهما الله چې د کومې مسئلې نه د خپل قول گواهی اخستې ده.( په هغې کې ) تبعيض پريخودلې شوې دی.د بهادرئ ښکاره کاوه د دلالت په وجه.یا د صفت عام کيدلو په وجه وَهِيَ الْمَشِيئَةُ او هغه مشيت دې حَتَّى لَوْ قَالَ: مَنْ شِئْتَ كَانَ عَلَى هَذَا الْخِلَافِ، وَاللَّهُ تَعَالَى أَعْلَمُ بِالصَّوَابِ تردې که، من شئت، وو.نو هم په دې اختلاف به وو.

(۲) نقلاً عن القول الراجع (۱\۳۳۲)_۲۳۱\۲



تشریح:- اوصاحبينو رحمهما الله چې کوم دوې [دوه] مثالونه په استشهاد کې پيش کړی دی .نودهغې نه ځواب دا دې.چه په دې دواړو مثالونو کې دتبعيض معنی پريخودو باندې قرينه موجود ده.په اولنی مثال کې قرينه دا ده.چه په داسې ډول کلام باندې خپله زړه ورتيا اوسخاوت مقصود وی .اودا په هغه وخت کې حاصليدې شی .چه دعام خوراك اجازت وی .اوپه دوهم مثال کې قرينه دا ده.چه په [طلق من نسائی من شاءت] کې ،مشيت، د نکره صفت دې.اومشيت د صفت عام دې.اودا قاعده ده.چه نکره کله په صفت عامه سره متصف شی .نونکره به عامه وی .ددې امله د دې مثال په حکم کې تعيم راغلو.هم دا وجه ده.که خاوند د [طلق من نسائی من شئت] اووئيل.نوهم هغه اختلاف به وی .کوم چې دامام ابوحنيفه رحمه الله په نيز ټولو ته طلاق ورکولې شی .څوکم ازکم يوه ښځه غيرمطلقه پاتې کيدل پکار دی .چه په [من نسائی ] کښې په،من تبعيض، باندې عمل اوکړې شی .اودلته دا قرينه نشته.چه مشيت صفت عامه شی .څکه چې په [من شئت] کې مشيت د مخاطب صفت خاصه دې.صفت عامه نه دې.اودصاحبينو رحمهما الله په نيزبغيرد استثناء نه ټولوته طلاق ورکولې شی .څکه چې د صاحبينو رحمهما الله په نيز،من،بيانيه دې.تبعيضی نه دې.والله اعلم بالصواب.

# باب الأيمان في الطلاق

ژباړه:- ( دا) باب د ايمان فی الطلاق ( په بيان کښې ) دې.

تشریح:- ايمان د يمين جمع ده.① ديمين معنی په لغت کې د قوت لپاره راځی .شاعرونيلی دی .② اوحلف بالله يعنی په الله باندې قسم خوړل هم يمين دې.څکه چې قسم هم د محلوف عليه لپاره سبب د قوت دې. ③ اود شرط اوجزاء ذکرباندې هم د يمين اطلاق کيږی .دلته کې هم دا مراد دې.④ اوښی لاس ته هم يمين وائی .څکه چې دې کې د چپه لاس په مقابله کې توان زيات وی .

اول ① مصنف رحمه الله اول طلاق منجز دخپلو ټولو قسمونو صريحی اوکنايه سره بيان کړل.ددې نه روسته اوس د طلاق معلق ذکرکوی .دطلاق معلق روستوکولو يوه وجه دا ده. چې طلاق معلق د طلاق اوحرف شرط دواړو نه مرکب دې.اوطلاق منجز مفرد دې.اوقاعده ده.چه مفرد مقدم وی په مرکب باندې.نوڅکه نې طلاق منجز اول اوطلاق معلق روسته ذکرکړل.② دويمه وجه دا ده. چې طلاق معلق فرع ده.اوطلاق منجز اصل دې.اوښکاره خبره ده.چه اصل مقدم وی په فرع باندې.نوڅکه ئې طلاق منجز وړاندې ذکرکړلو.اوطلاق معلق روسته

## طلاق په نکاح پورې معلق کول

وَإِذَا أَضَافَ الطَّلَاقَ إِلَى النِّكَاحِ اوکله نې چې طلاق منسوب کړو.نکاح ارخ ته وَقَعَ عَقِيبَ النِّكَاحِ نو طلاق به د نکاح نه روسته واقع کيږی مِثْلَ أَنْ يَقُولَ لِامْرَأَةٍ مثلاً يو( اجنبی يعنی پردئ) ښځې ته ووايي إِنْ تَزَوَّجْتُكِ فَأَنْتِ طَالِقٌ که ما دتا سره نکاح اوکړله.نو ته مطلقه ئې أَوْ كُلُّ امْرَأَةٍ أَتَزَوَّجُهَا فَهِيَ طَالِقٌ یا( وې وئيل) هر هغه ښځه چې زه د هغې سره نکاح اوکړم.هغه طالقه ده

تشریح:- مسئله دا ده.که يو کس طلاق په نکاح پورې معلق کړلو.مثلاً يوې پردئ ښځې ته نې اووئيل.[ان تزوجتك فانت طالق] یا ئې داسې اووئيل.[کل إمرأة أتزوجها فهی طالق]① نوزموږ په نيزپه دې صورت کې د نکاح نه روسته طلاق واقع کيږی

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللَّهُ تَعَالَى: لَا يَقَعُ لِقَوْلِهِ ﷺ لَا طَلَاقَ قَبْلَ النِّكَاحِ[1] او امام شافعی رحمه الله فرمائی .چه( طلاق) به نه واقع کيږی .د نبی کريم ﷺ د ارشاد [ لا طلاق قبل النكاح] په وجه.يعنی د نکاح نه وړاندې طلاق نه کيږی

[1]) من مخرمة رضي الله عنه أخرجه ابن ماجه فی الطلاق ببا ۱۷ قم ۲۰٤۸

(۱)

**تشريح:-** اوامام شافعي رحمه الله فرمائي .چه طلاق نه واقع کيږي . دليل دنبي ﷺ حديث دي.چه د نکاح نه وړاندي طلاق نشته.دحضرت عبدالله بن عمروبن العاص رضي الله عنه نه روايت دي.چه دوي يوي ښځي ته د نکاح پيغام اوليږلو.دهغي اولياو دهغي دنکاح کولونه انکاراوکړلو.نوحضرت عبدالله بن عمروبن العاص رضي الله عنه اوفرمائيل.[إن نکحتها فهي طالق ثلاثـا] بيا ئې په دې اړه کي د رسول الله ﷺ نه پوښتنه اوکړه .نبي ﷺ ورته اوفرمائيل.[لاطلاق قبل النکاح] ددې حديث نه معلوميږي .چه دنکاح نه وړاندي طلاق معتبر نه دې.

وَلَنَا أَنَّ هٰذَا التَّصَرُّفَ يَمِينٌ لِوُجُودِ الشَّرْطِ وَالْجَزَاءِ او زمونږ دليل دا دې.چه دا تصرف يمين دې.د شرط او جزاء موجود كيدلو په وجه فَلَا يُشْتَرَطُ لِصِحَّتِهِ قِيَامُ الْمِلْكِ فِي الْحَالِ نود يمين د تصرف د صحت لپاره في الحال د ملك موجود كيدل شرط نه دی لِأَنَّ الْوُقُوعَ عِنْدَ الشَّرْطِ ځکه چې ( د طلاق) واقع كيدل د شرط په وخت کيږي وَالْمِلْكُ مُتَيَقَّنٌ بِهِ عِنْدَهُ او ملك د شرط د وجود په وخت متعين دي وَقَبْلَ ذٰلِكَ أَثَرُهُ الْمَنْعُ وَهُوَ قَائِمٌ بِالْمُتَصَرِّفِ اود شرط د وجود نه وړاندي ددې اثر منع دې.او هغه تصرف سره قائم دې

**تشريح:-** زمونږ دليل دا دې.چه په يوځيزپورې معلق كول دحالف دا اړخه تصرف يمين دې.ځکه چې شرط اوجزاء دواړه موجود دی .اوهم ددې نوم تعليق دې.پاتې شوه دا خبره چې د تعليق په وخت کي دحالف ملك نشته.ددې ځواب دا دې.چه دتعليق په وخت کي د ملك وجود شرط نه دې.بلکه دجزاء د وجود په وخت کي دملك وجود شرط دې.اودلته د جزاء دوجود په وخت کي يقيناً ملك موجود دې.نود طلاق واقع كيدل يعني ترتب دجزاء به هم وی .اود شرط د وجود نه وړاندې د يمين اثرمنع ده.يعني دمحلوف نه بچ كيدل.اودا منع د متصرف يعني حالف پورې قائمه ده.نوپه دې وخت کي د طلاق دمحل څه حاجت نشته.بلکه د حالف ذمه واری کافي ده

وَالْحَدِيثُ مَحْمُولٌ عَلَى نَفْيِ التَّنْجِيزِ او حديث ( د طلاق) منجز په نفي باندې محمول دې وَالْحَمْلُ مَأْثُورٌ عَنِ السَّلَفِ كَالشَّعْبِيِّ وَالزُّهْرِيِّ وَغَيْرِهِمَا (۲) او حمل د اسلافو منقول دې.لکه د شعبي او زهري رحمه الله او ددې دواړو نه علاوه.

**تشريح:-** دامام شافعي رحمه الله د پيش کړی حديث نه ځواب دا دې.چه دا په طلاق منجزباندې محمول دې.حاصل دا چې نبي ﷺ اوفرمائيل.چه دنکاح نه وړاندې که طلاق ورکړې شي .نوطلاق نه واقع کيږي .ښکاره ده چې په دې کي دچا اختلاف نشته.اختلاف خوپه دې کي دې.چه طلاق په نکاح پورې معلق كول جائزدی که نه دی؟اوپه دې باندې په حديث کي څه صراحت نشته.نوپه دې حديث باندې استدلال كول صحيح نه دی .اودا حديث په طلاق منجز باندې حمل كول داسلافو رحمهم الله نه منقول دی .لکه امام شعبي امام زهري رحمهما الله اود دوی نه علاوه.

(۱) دشوافعواو احنافو رحمهم الله په مينځ کي په تعليق الطلاق په سلسله کي د اختلاف منشا دا ده.چه د شوافعو رحمهم الله په نيز تكلم بالتعليق په وخت اوشرط موجود كيدو په دواړووختونوکي د ملك وجود ضروري دې.اود احنافو رحمهم الله په نيز د يو شرط د وجود په وخت کي د ملك وجود ضروري دې.دتعليق په وخت کي ضروري نه دې.

## په شرط پورې دطلاق معلق كول

وَإِذَا أَضَافَهُ إِلَى شَرْطٍ اوکله ئې چې طلاق د شرط اړخ ته منسوب کړو وَقَعَ عَقِيبَ الشَّرْطِ نو طلاق به د شرط نه روسته واقع کيږي مِثْلُ أَنْ يَقُولَ لِامْرَأَتِهِ مثلاً خپلې ښځې ته ووايي

(۲) من مخرمة رضي الله عنه أخرجه ابن ماجه في الطلاق باب ۱۷ رقم ۲۰٤۸)_

(۳) ذكرالزيلعي رحمه الله نفي التخيير عن الشعبي والزهري وغيرهما في نصب الراية (۳/۳۲٦)_



**تشريح:-** مسئله دا ده.که يوکس د خپلې ښځې طلاق په دخول دار پورې معلق کړلو.مثلاً وې وئيل.[إن دخلت الدارفأنت طالق]که ته کورته داخله شوې.نو ته دې طلاقه يې. نود شرط په وجود يعنی د دخول دار نه روسته به طلاق واقع کيږي .اودا حكم بالاتفاق دې.

(۱) دليل دادې.چه معلق بالشرط د شرط د وجود په وخت د منجز پشان وی .

إِنْ دَخَلْتِ الدَّارَ فَأَنْتِ طَالِقٌ كه ته خپل كور ته داخله شوې نو ته طالقه ئې وَهٰذَا بِالْاِتِّفَاقِ او دا حكم متفق عليه دې لِأَنَّ الْمِلْكَ قَائِمٌ فِي الْحَالِ ځکه چې ملك د نكاح في الحال موجود دې وَالظَّاهِرُ بَقَاؤُهُ إِلَى وَقْتِ وُجُودِ الشَّرْطِ او ظاهر ددې بقاء ده.د شرط د وجود د وخت پورې

**تشريح:-** دا عبارت د يو سوال ځواب دې.سوال دادې.چه دا خبره منو.چه کله ملك موجود وی . نود شرط نه روسته طلاق واقع کيږي .خود شرط د وجود نه وړاندې ددې ملك د زوال احتمال شته.په دې طريقه چې دا کس د شرط د وجود نه وړاندې طلاق منجز ورکړي .نومناسب دا دی .چه د ملك دزوال داحتمال د امله دده قسم ښيځي صحيح نشي .

(۱) حاصل د ځواب دادې.چه في الحال ملك موجود دې.اوپه آئنده کي هم غالب گمان دا دې.چه ملك به موجود وی .ځکه چې په هرثابت شوی څيزکي اصل دا دې.چه هغه هميشه لپاره وی .خاص کرنکاح ځکه چې دا د واړه ژوند لپاره وی .نود ملك د زوال يووهمي احتمال ته به توجه نشي ورکولې.نوهرکله چې دا ثابته شوه.چه في الحال هم ملك موجود دې.اوپه آئنده کي به هم دغالب گمان په اعتبارسره ملك موجود وی .نودده كلام معلق زمونږ په نيزيمين صحيح وی .اودامام شافعي رحمه الله په نيزچه ايقاع د طلاق اوشی .نوصحيح به وی .

فَيَصِحُّ يَمِينًا أَوْ إِيقَاعًا نو يميناً يا ايقاعاً ( ددې معلق كول) صحيح دی .

**تشريح:-** صاحب دهدايه رحمه الله [يمينا اوإيقاعا] اوفرمائيل.اواختلاف اړخ ته ئې اشاره اوکړله.اختلاف دا دې.چه د تعليق په صورت کي مثلاً [إن دخلت الدارفأنت طالق] کي امام شافعي رحمه الله فرمائي .چه دتكلم په وخت کي به طلاق واقع كول متحقق وی .نوپه دخول دارپورې ايقاع طلاق معلق نه دی .بلکه وقوع د طلاق ورپورې معلق دی .اوزمونږ په نيزد تكلم په وخت کي صرف يمين دې.د شرط په وجود سره به ايقاع طلاق متحقق کيږي .دا داسې شوه.لکه چې د دخول داريه وخت کي خاوند [أنت طالق] اووئيل.تفصيل د اصول فقه په کتابونوکي موجود دې.هلته دې اوکتلې شی .والله اعلم بالصواب.

## قاعده كليه

وَلَا تَصِحُّ إِضَافَةُ الطَّلَاقِ إِلَّا أَنْ يَكُونَ الْحَالِفُ مَالِكًا اود طلاق نسبت كول صحيح نه دی .مگر داچه قسم خوړونکې ( بالفعل) مالك وی أَوْ يُضِيفَهُ إِلَى مِلْكٍ يا طلاق ملك اړخ ته منسوب کړی

**تشريح:-** په دې عبارت کي صاحب دکتاب يوه قاعده ذکرکړې ده.هغه دا چې شرط اړخ ته د طلاق منسوب كول به په هغه وخت کي صحيح وی .چه حالف د محلوف عليه بالفعل مالك وی .مثلاً خپلې ښځې ته اووائي [إن دخلت الدارفأنت طالق] يا طلاق خپل ملك ته منسوب کړی .مثلاً اووائي .[إن نكحتك فأنت طالق].

لِأَنَّ الْجَزَاءَ لَابُدَّ أَنْ يَكُونَ ظَاهِرًا لِيَكُونَ مُخِيفًا ځکه چې د جزاء لپاره غالب الوجود كيدل ضروري دی .چه دې يريدونکې شی فَيَتَحَقَّقُ مَعْنَى الْيَمِينِ وَهُوَ الْقُوَّةُ نود يمين معنى به متحقق کيږي .او هغه قوت دې وَالظُّهُورُ بِأَحَدِ هٰذَيْنِ اود قوت ښکاره كيدل به په دې دواړو د يو په ذريعه کيږي وَالْإِضَافَةُ إِلَى سَبَبِ الْمِلْكِ بِمَنْزِلَةِ الْإِضَافَةِ إِلَيْهِ اود ملك سبب اړخ ته نسبت كول ملك اړخ ته د نسبت كاوه په مرتبه کي دی لِأَنَّهُ ظَاهِرٌ عِنْدَ سَبَبِهِ ځکه چې جزاء به ښکاره کيږي .د ملك د سبب په وخت.

تشریح:-دلیل دا دې.چه د جزاء د وقوع وجود ضروری دې.ددې لپاره چې د جزاء واقع کیدوپه ذریعه مخاطب سره ویره شی .اودیمین معنی متحقق شی .دیمین معنی قوت دې.اوقوت ظهورپه دې دوو کارونوکې په یوسره کیږی .یعنی چې حالف بالفعل مالك وی .یا ملك اړخ ته نسب شوې وی .اود ملك سبب اړخ ته نسب کول داسې دی .لکه ملك اړخ ته نسب کول.مثلاً د [إن إشتریتك فانت حر،یا إن ملکتك فانت حر] په منزله دی (عنایه).

**پردۍ ته د [إن دخلت الدارفانت طالق] وئیلوحکم**

فَإِنْ قَالَ لِأَجْنَبِيَّةٍ نوکه وې وئیل.یوې اجنبیه ( پردۍ ښځې) ته إِنْ دَخَلْتِ الدَّارَفَأَنْتِ طَالِقٌ که ته کورته داخله شوې.نو ته طالقه يې ثُمَّ تَزَوَّجَهَا فَدَخَلَتِ الدَّارَ بیا يې د هغې سره نکاح اوکړله.بیا کورته داخله شوه لَمْ تَطْلُقْ نو طلاق به نه واقع کیږی

تشریح:- صورت د مسئلې دا دې.چه یوسړی پردۍ ښځې ته اووئیل.[إن دخلت الدارفانت طالق] بیا يې د هغې سره نکاح اوکړله.اودنکاح نه روسته هغه کورته داخله شوه.نوپه دې صورت کې طلاق نه واقع کیږی.

لِأَنَّ الْحَالِفَ لَيْسَ بِمَالِكٍ خکه چې قسم خوړونکې ( بالفعل) مالك نه دې وَلَا أَضَافَهُ إِلَى الْمِلْكِ أَوْسَبَبِهِ اونه يې دا( طلاق ) ملك اود ملك سبب اړخ ته منسوب کړې دې وَلَا بُدَّ مِنْ وَاحِدٍ مِنْهُمَا حالانکه په دې دواړو کې د یو کیدل ضروری دی .

تشریح:- دلیل دا دې.چه حالف نه د طلاق مالك دې.اونه يې طلاق ملك اود ملك سبب ته منسوب کړې دې.حالانکه د طلاق داضافت لپاره په دې دواړوکې د یو وجود ضروری دې.

**د شرط الفاظ**

وَأَلْفَاظُ الشَّرْطِ إِنْ وَإِذَا وَإِذَامَا وَكُلُّ وَكُلَّمَا وَمَتَى وَمَتَى مَا او الفاظ د شرط،ان، اذا، اذا ما، کل، کلما، متی، اومتی ما، دی

تشریح:- مصنف دهدایه رحمه الله د کلمات شرط نه په الفاظود شرط سره تعبیراوکړلو.په حروفو سره يې ترې تعبیر اونکړلو.خکه چې په دې کلماتوکې زیات اسماء دی .حروف نه دی .نوخکه يې د حروفوپه خائې په ... تو شره تعبیراوکړلو.چه اسماء اوحروفوتولوته گډ شی .اوکلمه د [ان] په کلماتود شرط کې اصل ده.اوپاته واړه ددې فرع دی.

لِأَنَّ الشَّرْطَ مُشْتَقٌّ مِنَ الْعَلَامَةِ،خکه چې شرط مشتق دې.( د هغه شرط نه کوم چه) د علامت ( په معنی کې) دې وَهَذِهِ الْأَلْفَاظُ مِمَّا تَلِيهَا أَفْعَالٌ اودا الفاظ داسې دی .چه ددې سره افعال یو خائې شوی دی فَتَكُونُ عَلَامَاتٍ عَلَى الْحِنْثِ نو( دا به) د حانث کیدلو علامات وی

تشریح:صاحب دهدایه رحمه الله د کلمات شرط وجه د تسمیه دا بیان کړې ده.چه شرط مشتق دې د هغه څه نه چې معنی يې نښانه ده.دالله جل جلاله ارشاد دې.((فَقَدْ جَآءَ أَشْرَاطُهَا)) [أي علاماتها] [أشراط الساعة یعنی علامات الساعة]اودا افعال داسې وی .چه افعالوسره متصل وی .سوا د[کل] د کلمې نه.نودا د حانث کیدوعلامات دی .

دصاحب هدایه رحمه الله په عبارت کې په ظاهره سقم دې.خکه چې فرمائی .شرط مشتق دې د علامه نه.په ظاهره دا غلط ښکاری .خکه چې داشتقاق نه مراد اشتقاق کبیردې.اواشتقاق کبیردې ته وائی .چه د دوو لفظونوپه لفظ اومعنی کې مناسبت وی .اوپه شرط اوعلامه کې لفظی مناسبت نشته.نودا وئیل چې شرط علامت دې څنگه صحیح کیداې شی .ددې اصله عبارت مقدراوګڼلو.اودا وائی .چه شرط بسکون الراء مشتق دې د شرط بفتح الشین والراء نه.د کوم معنی چې علامت ده.په دې تقدیرسره د هدایه عبارت بې غباره شو.(یعنی څه اعتراض پرې پاتې نشو.)



ثُمَّ كَلِمَةُ إِنْ حَرْفٌ لِلشَّرْطِ بیا ( دې واضحه وی چه) کلمه د ،ان،خالص د شرط لپاره ده لِأَنَّهُ لَيْسَ فِيهَا مَعْنَى الْوَقْتِ خکه چې په دې کې د وخت معنی نشته وَمَا وَرَاءَهَا مُلْحَقٌ بِهَا اود کلمه، ان، نه علاوه هغه الفاظ ددې سره ملحق دی

تشریح:فرمائی .چه کلمه د[ان] صرف د شرط لپاره ده.اوپه باب د شرط کې هم دا اصل ده.خکه چې په کمله د [ان] کې د وخت وغیره معنی نشته.اوددې نه سوا پاته واړه کلمات د کلمه [ان] سره لاحق دی .د [ان] کلمې له د متضمن کولوپه وجه

وَكَلِمَةُ كُلٍّ لَيْسَتْ شَرْطًا حَقِيقَةً او کلمه د ،کل، په حقیقت کې شرط نه دې لِأَنَّ مَا يَلِيهَا اسْمٌ خکه چې کلمه د ،کل، سره کوم متصل دې.هغه اسم دې وَالشَّرْطُ مَا يَتَعَلَّقُ بِهِ الْجَزَاءُ او شرط هغه دې.چه هغې سره جزاء متعلق وی وَالْأَجْزِيَةُ تَتَعَلَّقُ بِالْأَفْعَالِ او جزاګانې د افعالو سره متعلق وی إِلَّا أَنَّهُ أُلْحِقَ بِالشَّرْطِ لِتَعَلُّقِ الْفِعْلِ بِالْاِسْمِ الَّذِي يَلِيهَا مګر داچه کلمه د ،کل، شرط سره لاحق کړې شوه.د فعل متعلق کیدلو په وجه.د هغه اسم سره کوم چې دکلمه،کل، سره متصل دې مِثْلُ قَوْلِكَ كُلُّ عَبْدٍ اشْتَرَيْتُهُ فَهُوَ حُرٌّ لکه ستا قول،هر غلام چې زه هغه واخلم هغه دې آزاد وی ،

تشریح:- .اوکلمه د [کل] په حقیقت کې شرط نه دې.خکه چې کمله د[کل] سره چې څه متصل دې.هغه اسم دې.اوشرط هغه وی .چه هغې پورې جزاء متعلق وی .اوجزاء د فعل پورې متعلق کیږی .اسم سره نه.خوکلمه د [کل] د شرط سره لاحقه کړې شوې ده.خکه چې فعل ددې اسم سره متصل دې.کوم اسم چې د کلمه [کل] د اسم سره ملاؤ شوې دې.یعنی فعل دهغه اسم لپاره لازم دې.کوم اسم چې د کمله کل سره متصل دې.مثلاً ستا وینا چې [کل عبدإشتریته فهوحر]شو.

**د شرط په وجود سره دیمین ختمیدل**

قَالَ رَضِيَ اللهُ تَعَالَى عَنْهُ قدوری رحمه الله فرمائی فَفِي هَذِهِ الْأَلْفَاظِ إِذَا وُجِدَ الشَّرْطُ په دې الفاظوکې چې کله شرط اوموندې شو انْحَلَّتْ وَانْتَهَتِ الْيَمِينُ نو قسم منحل ( کلاؤ) شو.او ختم شو لِأَنَّهَا غَيْرُ مُقْتَضِيَةٍ لِلْعُمُومِ وَالتَّكْرَارِ لُغَةً خکه چې دا الفاظ په لغت کې عموم او تکرار ته مقتضی نه دې فَبِوُجُودِ الْفِعْلِ مَرَّةً يَتِمُّ الشَّرْطُ نو یو خل د فعل موندلو په وجه به شرط پوره کیږی وَلَا بَقَاءَ لِلْيَمِينِ بِدُونِهِ اود شرط نه بغیر یمین پاته نه پاتې کیږی

تشریح:- دکلمه [کلما] نه سوا د شرط د پاته تولوالفاظوحکم دا دې.چه شرط موجود شی .نویمین به منحل شی .اوختم به شی .اودلیل دا دې.چه د [کلما] نه سوا پاته د شرط واړه الفاظ دعموم اوتکرارتقاضا نه کوی .نوچه یوخل فعل موجود شی .شرط پوره کیږی .اوبغیرشرطه یمین پاته نه پاتې کیږی

إِلَّا فِي كَلِمَةِ كُلَّمَا خو په کلمه د ،کلما، کې فَإِنَّهَا تَقْتَضِي تَعْمِيمَ الْأَفْعَالِ خکه چې دا د افعالو د تعمیم تقاضا کوی قَالَ اللهُ تَعَالَى {كُلَّمَا نَضِجَتْ جُلُودُهُمْ} الْآيَةَ الله تعالی فرمائیلی دی ،،کله چې ددوی څرمنې او سوزی ،( الآیه) وَمِنْ ضَرُورَةِ التَّعْمِيمِ التَّكْرَارُ اود تعمیم د لوازمو څخه تکرار دې.

تشریح:- .اوپاتې شوه کلمه د [کلما] نوچونکه دا په افعالوکې دتعمیم اوتکرارتقاضا کوی .لکه چې دالله جل جلاله ارشاد دې ((كُلَّمَا نَضِجَتْ جُلُودُهُمْ)) اود تعمیم لپاره تکرارلازم وی .نوخکه په کلمه د [کلما]کې د شرط موجودیدو نه روسته هم یمین پاته پاتې کیږی .

**د[کلما دخلت الدار فانت طالق] حکم**

قَالَ قدوری رحمه الله فرمائی فَإِنْ تَزَوَّجَهَا بَعْدَ زَوْجٍ آخَرَ نوکه ددې نه روسته يې دغه ښځې ره نکاح اوکړله.یعنی د دوهم خاوند( سره د حلاله) نه روسته وَتَكَرَّرَ الشَّرْطُ او شرط مکرر اوموندې شو لَمْ يَقَعْ شَيْءٌ نو هیڅ شی به نه

واقع کیږی

تشریح:- دا مسئله په کلمه د [کلما] متفرع ده.که سړی ښځې ته اووئیل.[کلما دخلت الدارفانت طـالق] اوښځه بلا ناغه درې خله کورته داخله شوه.نودرې طلاقه واقع کیږی .نوکه د دوهم د حلالـه نه روسته دا دوباره د اولنی خاوند په نکاح کې راغله.اوشرط مکرر موجود شو.یعنی دا ښځه بیا کورته داخله شوه.نوطلاق نه واقع کیږی .

لِأَنَّ بِاسْتِيفَاءِ الطَّلْقَاتِ الثَّلَاثِ الْمَمْلُوكَاتِ فِي هَذَا النِّكَاحِ لَمْ يَبْقَ الْجَزَاءُ خکه چې په دې نکاح کې خپل مملوکه درې طلاقونه وصولولو په وجه جزاء پاته پاتې نشوه وَبَقَاءُ الْيَمِينِ بِهِ وَبِالشَّرْطِ اود قسم بقاء د جزاء او شرط سره ده وَفِيهِ خِلَافُ زُفَرَ رَحِمَهُ اللَّهُ تَعَالَى او په دې کې اختلاف دې.د امام زفر رحمه الله وَسَنُقَرِّرُهُ مِنْ بَعْدُ إِنْ شَاءَ اللَّهُ تَعَالَى اودا به موږ انشاءالله

تشریح:- دلیل دا دې.چه دا خاوند په سابقه نکاح کې دکومودرې طلاقومالك وو.هغه پوره شول.نوجزاء پاته پاتې نشوه.خکه چې جزاء دهغه ملك درې طلاقه وو.نوچه جزاء منتفی شوه.قسم هم منتفی شو.خکه چې قسم د شرط اوجزاء د ذکرنوم دې.اوهرکله چې قسم ختم شو.نودخول دارنه روسته د طلاق واقع کیدوڅه معنی ده؟ ددې امله مونږوایو.چه په دې صورت کې طلاق نه واقع کیږی .

## د [کلما تزوجت إمرأة فهی طالق] حکم

وَلَوْ دَخَلَتْ عَلَى نَفْسِ التَّزَوُّجِ اوکه ( کلمه د کلما) په نفس تزوج باندې داخل کړې شوه بِأَنْ قَالَ: كُلَّمَا تَزَوَّجْتُ امْرَأَةً په دې طریقه چې وې وئیل.چه کله زه د یوې ښځې سره نکاح اوکړم فَهِيَ طَالِقٌ يَحْنَثُ بِكُلِّ مَرَّةٍ وَإِنْ كَانَ بَعْدَ زَوْجٍ آخَرَ نو هغه طالقه ده.په هر ځل سره به حانث کیږی .اګر چې د دوهم خاوند نه روسته وی

تشریح:- مسئله دا ده.که یوکس په نفس تزوج باندې کلمه د [کلما] داخله کړه.اوونې وئیل.[کلما تزوجت إمـرأة فهی طالق]نودا کس به په هرځل نکاح کولوسره حانثیږی .اګرچه د دوهم خاوند نه دحلالـه نه روسته ولې نه وی .

لِأَنَّ انْعِقَادَهَا بِاعْتِبَارِ مَا يَمْلِكُ عَلَيْهَا مِنَ الطَّلَاقِ بِالتَّزَوُّجِ خکه چې د یمین منعقد کیدل په دې اعتبار سره دی .چه هغه د تزوج په وجه د طلاق مالك دې وَذَلِكَ غَيْرُ مَحْصُورٍ او تزوج غیرمحدود دې.

تشریح:-دلیل دا دې.چه یمین ددې امله منعقد کیږی .چه دا کس د نکاح کولود امله د طلاق مالك شو. اونکاح کول غیرمحدود دی .نوطلاق به هم غیرمحدود وی .خکه چې تکرارد سبب د مسبب د تکرارتقاضا کوی .

## دیمین نه روسته د ملك زوال هغه نه ختموی

قَالَ قدوری رحمه الله فرمائی وَزَوَالُ الْمِلْكِ بَعْدَ الْيَمِينِ لَا يُبْطِلُهَا اود ملك زائل کیدل د قسم نه روسته قسم نه باطلوی

تشریح:-صاحب دقدوری رحمه الله یواصول ذکرکړې دې.هغه داکه د قسم نه روسته د سړی ملك زائله شی .نوقسم نه باطلیږی . ددې صورت دا دې.چه سړی خپلې ښځې ته اووئیل.[ان دخلت الدارفانت طـالق] بیا د دخول نه وراندې ښځه بائنه شوه.دملك په زوال سره به یمین نه باطلیږی .

لِأَنَّهُ لَمْ يُوجَدِ الشَّرْطُ فَبَقِيَ خکه چې شرط اونه موندې شو.نو قسم پاته پاتې شو

تشریح:-دلیل دا دې.چه د یمین بقاء په شرط اوجزاء سره وی .اومفروض دا دی .چه شرط موجود شوې نه دې.نوچونکه شرط پاته دې.اودمحل د بقاء د امله به جزاء هم پاته وی .نوهرکله چې شرط اوجزاء دواړه پاته



وی .نویمین به هم پاته وی .

وَالْجَزَاءُ بَاقٍ لِبَقَاءِ مَحَلِّهِ فَيَبْقَى الْيَمِينُ اود جزاء محل ( ښځه) پاته کیدلو سره جزاء پاته ده.نو یمین هم پاته دې

تشریح:خوکه څوك دا سوال اوکړی .چه دا منو.چه محل د جزاء پاته دې.خود جزاء د واقع کیدو لپاره د ملك شرط دې.اودلته ملك موجود نه دې.نویمین به پاته نه وی .

اومونږ.کلام د جزاء په وقوع کې نه دې.بلکه د یمین په بقاء کې دې.اویمین دابتداء ملك محتاج نه دې.خکه چې [ان تزوجتك فانت طالق]جائزدې.حالانکه په دغه وخت کې حالف د طلاق مالك نه وی . نوهرکله چې په ابتداء کې یمین د ملك محتاج نه دې.نوپه بقاء خوبه خامخا محتاج نه وی .خکه چې د ابتداء په مقابله کې بقاء آسانه ده.

ثُمَّ إِنْ وُجِدَ الشَّرْطُ فِي مِلْكِهِ بیا که د سړی په ملك کې شرط اوموندې شو انْحَلَّتِ الْيَمِينُ وَوَقَعَ الطَّلَاقُ نو قسم نازل ( واقع) شو.او طلاق واقع شو لِأَنَّهُ وُجِدَ الشَّرْطُ خکه چې شرط اوموندې شو وَالْمَحَلُّ قَابِلٌ لِلْجَزَاءِ او محل قابل جزاء دې فَيَنْزِلُ الْجَزَاءُ نو جزاء نازل ( واقع ) شوه وَلَا تَبْقَى الْيَمِينُ لِمَا قُلْنَا او یمین پاته نه پاتې کیږی .د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ بیان کړې دې

تشریح:بیا ددې نه روسته دوې [دوه] صورتونه دی .① یودا چې شرط په ملك کې واقع شی .مثلاً دا کس چې دې ښځې سره دوباره نکاح اوکړی .اوبیا شرط موجود شی .② دا چې شرط په غیرملك کې موجود شی .مثلاً د دوباره نکاح نه وړاندې شرط موجود شو.

وَإِنْ وُجِدَ فِي غَيْرِ الْمِلْكِ اوکه په غیر ملك کې شرط اوموندې شو انْحَلَّتِ الْيَمِينُ لِوُجُودِ الشَّرْطِ نو یمین نازل شو.د شرط موجود کیدلو په وجه وَلَمْ يَقَعْ شَيْءٌ لِانْعِدَامِ الْمَحَلِّيَّةِ او هیڅ ( طلاق ) به نه واقع کیږی .د محل معدوم کیدلو په وجه.

حل اللغة: ① انعدام: نشتوالې]

تشریح:نوپه اول صورت کې به طلاق واقع کیږی .اویمین به پوره شی .طلاق خوبه خکه واقع کیږی .چه شرط (دخول دار) په ملك کې موجود شو.نود طلاق جزاء کومه چې دې سره متعلق ده.هغه به هم واقع کیږی .اودیمین پوره کیدل ددې لپاره دی .چه په کلام کې د [ان] کوم لفظ دې.هغه په تکرارباندې دلالت نه کوی .نوچه یوځل شرط موجود شی .یمین به پوره شی .اوپه دوهم صورت کې به یمین پوره شی .خکه چې شرط موجود شوې دې.خوطلاق نه دې واقع شوې.خکه چې محل د طلاق معدوم دې.

## په شرط کې د زوجینود اختلاف حکم

وَإِنِ اخْتَلَفَا فِي وُجُودِ الشَّرْطِ اوکه دواړو( ښځې خاوند) په شرط کې اختلاف اوکړو فَالْقَوْلُ قَوْلُ الزَّوْجِ إِلَّا أَنْ تُقِيمَ الْمَرْأَةُ الْبَيِّنَةَ نود خاوند قول به ( معتبر) وی .خودا چې ښځه ګواهان قائم کړی .( نوبیا به د ښځې ګواه قبلولې شی ).

تشریح:- صورت د مسئلې دا دې.چه دښځې او خاوند د شرط په وجود کې اختلاف شی .مثلاً سړې وائی .چه شرط نه دې موجود شوې اوطلاق نه دې واقع شوې.اوښځه وائی .چه شرط موجود شوې دې.اوطلاق واقع شوې دې.په دې صورت کې که ښځې سره ګواهان موجود نه وی .نود خاوند قول به معتبروی .اوکه ښځې سره ګواهان موجود وی .نوګواهی به قبلولې شی .

لِأَنَّهُ مُتَمَسِّكٌ بِالْأَصْلِ وَهُوَ عَدَمُ الشَّرْطِ، خکه چې خاوند د اصل نه دلیل نیونکې دې.او هغه عدم شرط دې

تشریح:-دلیل دا دې.چه د خاوند قول د اصل موافق دې.خکه چې اصل عدم شرط دې.اوچه د چا قول داصل سره موافق وی .هغه ته مدعی علیه وائی .نوښځه مدعی او خاوند مدعی علیه شو.اوپه حدیث کې دی .کم

مدعی سره ګواهان موجود نه وی .نود مدعی عليه قول به معتبروی .

وَلِأَنَّهُ يُنْكِرُ وُقُوعَ الطَّلَاقِ وَزَوَالَ الْمِلْكِ وَالْمَرْأَةُ تَدَّعِيهِ او ځکه چې خاوند د طلاق واقع کيدلو اود ملك د زوال منكر دي.

تشریح:- دوهم دليل دا دي.چه خاوند د وقوع طلاق اوزوال ملك منكردي.اوښځه ددې دواړو څيزونومدعيه ده.اوچه ګواهان نه وی .نودمنكرقول معتبروی .نوځکه په دې مسئله کي که ښځې سره ګواهان موجود نه وی .نود خاوند قول به معتبروی .

## داسې شرط چې هم د ښځې نه معلوميږي

فَإِنْ كَانَ الشَّرْطُ لَا يُعْلَمُ إِلَّا مِنْ جِهَتِهَا بيا که شرط(داسې شی وی)چې نه معلوميږي .خود ښځې د اړخه فَالْقَوْلُ قَوْلُهَا فِي حَقِّ نَفْسِهَا نود ښځې قول به ددې د ذلت په حق کي (معتبر)وی مِثْلُ أَنْ يَقُولَ: إِنْ حِضْتِ فَأَنْتِ طَالِقٌ وَفُلَانَةُ مثلاًدا اووائی .که ته حائضه شوې.نو ته او فلانۍ ( ښځه ) طالقه دی فَقَالَتْ: قَدْ حِضْتُ طَلُقَتْ هِيَ هغې اووئيل. زه حائضه يم.نودا پخپله طالقه شوه وَلَمْ تَطْلُقْ فُلَانَةُ او فلانۍ ( ښځه) به طالقه نه وی وَوُقُوعُ الطَّلَاقِ اسْتِحْسَانٌ اود طلاق واقع کيدل استحسان دي

تشریح:- مسئله که شرط د داسې څيزوی .چه هغه صرف د ښځې نه معلوميږي .نوپه داسې صورت کي به دخپل ذات په حق کي د ښځې قول معتبروی .دبل په حق کي به نه معتبر نه وی .دا قول دامام شافعی امام مالك اوامام احمد(رح) هم دي.مثلاً خاوند خپلې ښځې ته اووئيل.[ان حضت فانت طالق وفلانـة] (دفلانۍ نه دويمه ښځه مراد ده) او ښځې اووئيل.چه زما حيض راغلي دي.نودا به مطلقه وی .اوددې په بن به طلاق نه واقع کيږي .خودا خبره ياد ساتئ:چه د بن د طلاق نه واقع کيدل په هغه صورت کي دی .چه خاوند ددې په قول [حضت] کي تکذيب اوکړی .اوکه خاوند ددې تصديق اوکړلو.نود دواړو ښځوطلاق به واقع کيږي

وَالْقِيَاسُ أَنْ لَا يَقَعَ او قياس دادي.چه واقع نشی لِأَنَّهُ شَرْطٌ ځکه چې دا شرط دي فَلَا تُصَدَّقُ كَمَا فِي الدُّخُولِ نود ښځې تصديق به نه کيږي .لکه څنګه چې د دخول دار په صورت کي ( د ښځې تصديق نه کيږي )

تشریح:- اودقياس تقاضا دا ده.چه طلاق واقع نشی .ځکه چې په [ان حضت فانت طالق] کي حيض شرط دي.اوښځه د شرط په وجود کي مدعيه ده.او خاوند منكر دي.اوچه بينه نه وی .نود منكرقول معتبر وی .نوپکارده چې دلته د ښځې دقول تصديق اونکړې شی .لکه څنګه چې دخول دار واقع شی .اوسړې انکارکوی .نود ښځې دقول تصديق به نشی کولي

وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ أَنَّهَا أَمِينَةٌ فِي حَقِّ نَفْسِهَا اود استحسان دليل دادي.چه دا ښځه د خپل ذات په حق کي امانت داره ده .إِذْ لَا يُعْلَمُ ذَلِكَ إِلَّا مِنْ جِهَتِهَا ځکه چې دا خبره سوا ددې نه په بل څه اړخ نشی معلوميدلي فَيُقْبَلُ قَوْلُهَا نوهم د ښځې قول به قبول وی

تشریح:-اوداستحسان دليل دا دي.چه ښځې د خپل ذات په حق کي امانتدارې وی .ځکه چې ښځې دهغه څيزيه ظاهرکولوکي امانداري وی .کوم چې په رحمونوکي وی .اوددې د صحيح ښکاره کولوحکم ورته هم شوې دي.دالله ﷻ ارشاد دي ((وَلَا يَحِلُّ لَهُنَّ أَنْ يَكْتُمْنَ مَا خَلَقَ اللَّهُ فِي أَرْحَامِهِنَّ)) اوددې امله هم ښځه امانت داره ده.چه حيض داسې شرط دي.چه ددې علم صرف دې ته کيدای شی .بل چاته نشی .اوقاعده دا ده.چه دامين قول دهغه د خپل ځان په حق کي قابل قبول وی .نوددې امله به د ښځې قول چې په ماباندې حيض راغلي دي.دا به قبلولي شی .



كَمَا يُقْبَلُ فِي حَقِّ الْعِدَّةِ وَالْغِشْيَانِ .لکه څنګه چې د عدت اود وطی په حق کي ومنلی شوی دی لَكِنَّهَا شَاهِدَةٌ فِي حَقِّ ضَرَّتِهَا بَلْ هِيَ مُتَّهَمَةٌ ليکن دا ښځه د خپلې بنې په حق کي ګواه ده.بلکه متهمه ده فَلَا يُقْبَلُ قَوْلُهَا فِي حَقِّهَا انو ددې قول به ددې د بنې په حق کي نه قبليږي .

حل اللغة: ① الغشيان: وطی ② ضرة: بن]

تشریح:.لکه څنګه چې د عدت او وطی په اړه کي دښځې په حق کي ددې قول قبلولې شی .د عدت په حق کي د قبليدو مطلب دا دي.چه ښځه اووائی .زما عدت پوره شوې دې يا نه دې پوره شوې.نوپه دې کي به دښځې قول معتبروی .دسړی به نه وی .

اود وطی په حق کي د قبلولودوې [دوه] مطلبه کيدې شی .يودا چې دا په درې طلاقه مغلظه شوې وی . او اووائی .چه زما عدت پوره شوې دې.اوبل خاوند سره مي نکاح شوې ده.اوهغه راباندې دخول کړې دې .نود دې دوهم خاوند په دخول کي به دښځې قول معتبروی . دوهم مطلب دا دې.که خاوند خپلې ښځې سره جماع کول غواړی .نود ښځې په دې قول به ددې تصديق کولې شی .چه زه پاکه يم يا حائضه يم.

البته په بن باندې دطلاق واقع کولوپه سلسله کي دا ګواه ده.بلکه متهمه ده.ځکه چې بعضې وخت کي انسان دا غواړی .که زه پاتې کيږم اوکه نه.خوچه زما مقابل پاتې نشی .نودلته کي هم دا کيدای شی .چه د ښځې په زړه کي دا جذبه وی .چه زه دې پاتې شم اويا نه.خوچه زما بن خوپاتې نشی .

## [ان كنت تحبين أن يعذبك الله في نارجهنم فانت طالق]وغيره احكام

وَكَذَلِكَ لَوْ قَالَ او دغه ډول سړی اووئيل إِنْ كُنْتِ تُحِبِّينَ أَنْ يُعَذِّبَكِ اللَّهُ فِي نَارِ جَهَنَّمَ که ته دا خبره خوښوې.چه الله تاته د جهنم په اور کي عذاب درکړی فَأَنْتِ طَالِقٌ وَعَبْدِي حُرٌّ نو ته طالقه يې.او زما غلام آزاد وی فَقَالَتْ أُحِبُّهُ ښځې اووئيل.چه زه دا خوښوم

حل اللغة: ① نار: اور]

تشریح:- په عبارت کي دوې [دوه] مسئلې بيان شوی دی .① يوه دا چې خاوند خپلې ښځې ته اووئيل.[ان كنت تحبين ان يعذبك الله في نارجهنم فانت طالق وعبدی حر] د عذاب جنهم په غوښتلوپورې ئې دښځې طلاق اود غلام آزادی معلق کړل.بيا ښځې اووئيل.چه زه عذاب جهنم خوښوم.نود دې دا قول به دخپل ځان په اړه کي قبول وی .طلاق به واقع شی .خودغلام په حق کي نه قبليږي .اوغلام به نه آزاديږي .

أَوْ قَالَ يا سړی اووئيل إِنْ كُنْتِ تُحِبِّينِي فَأَنْتِ طَالِقٌ وَهَذِهِ مَعَكِ که ته ما خوښوې.نو ته طالقه يې.اودا چې ستا سره دی فَقَالَتْ أُحِبُّكَ نو ښځې اووئيل.چه زه تا خوښوم طَلُقَتْ هِيَ وَلَمْ يُعْتَقِ الْعَبْدُ نودا ( ښځه) به طالقه وی .او غلام به آزاد نه وی وَلَا تَطْلُقُ صَاحِبَتُهَا لِمَا بَيَّنَّا او ددې بنه به مطلقه نه وی .د هغه دليل په وجه کوم چې موږ بيان کړې دي

تشریح:- دويمه دا چې خاونداووائی .[ان كنت تحبينی فانـت طـالق وهــذه معـك] اوښځې اووئيل.چه زه تا خوښوم.نوپه دې صورت کي ددې مخاطبې ښځې طلاق واقع کيږي .اودهغې د بن طلاق نه واقع کيږي .

دليل په وړاندينۍ مسئله کي تيرشوې دي.چه دا ښځه دخپل ځان په حق کي امينه ده.اودخپلې بنې او غلام په حق کي شاهده ده.اودامين خبره صرف دهغه په حق کي معتبره وی .دبل په حق کي نه وی .

وَلَا يُتَيَقَّنُ بِكَذِبِهَا او ددې ښځې د دروغجن کيدلو يقين نشته لِأَنَّهَا لِشِدَّةِ بُغْضِهَا إِيَّاهُ قَدْ تُحِبُّ التَّخَلُّصَ مِنْهُ بِالْعَذَابِ ځکه چې دغه ښځه کله خپل خاوند د سخت بغض په وجه خوښوی .چه دې نه د عذاب په ذريعه خلاصي ملاؤ شی وَفِي حَقِّهَا إِنْ تَعَلَّقَ الْحُكْمُ بِإِخْبَارِهَا وَإِنْ كَانَتْ كَاذِبَةً او ددې په حق کي د حکم تعلق ددې په خبر

ور كاوه سره دي.اګرچه دا دروغجنه وی فَفِي حَقِّ غَيْرِهَا يَبْقَى الْحُكْمُ عَلَى الْأَصْلِ وَهِيَ الْمَحَبَّةُ نو ددې نه د علاوه په حق کي به حکم په اصل باندې پاته پاتې وی .او هغه محبت دې.

**حل اللغة*** ① التخليص: خلاصي ② شدة: سختوالي]

**تشريح:**- دا عبارت د يواشكال خواب دې.چه دښځې قول دخپل خان په اړه کي ددې امله قبلولې شی . چې هغه په خپله خبره کي صادقه ده.خود جهنم اورخوښلوکي ددې خبره يقيني دروغ ده.ځکه چې مسلمان د جهنم عذاب خوښ کړی .دا خلاف عقل خبره ده.بهرحال هرکله چې موږ ته ددې ښځې د دروغو يقين اوشو.نوددې قول بيخي قبلول پکارنه وو.

[1]خواب دا دې.چه ددې ښځې د دروغويقين دې اونکړې شی .ځکه چې ښځې هسي هم ناقص العقل دی . زياتی لا دا چې جاهلانې هم دی .اوس په داسې حالت کي بعضې وخت د خاوند دا ړخه ظلمونه اوزياتې دومره زيات وی .چه ښځه عاجزه ددې بدماغه نه د خلاصيدو لپاره د دوزخ اورهم خوښوی .نودښځې دروغ كيدل يقين نشو.اوچه يقيني نشو.نو ددې ښځې په حق کي به حکم هم ددې په خبرپورې متعلق وی .اګرچه دروغژنه ولې نه وی .ځکه چې ددې دغيرپه حق کي حکم په خپل اصل پاته دې.اوهغه محبت دې.يعنی محبت يا د دوزخ عذاب خوښول په دليل سره معلوم نه دی .نوځکه به د بل چا په حق کي نه ثابتيږی .

## په طلاق پورې د طلاق معلق کولوپه صورت کې دطلاق واقع كيدووخت

وَإِذَا قَالَ لَهَا او کله نې چې ښځې ته اووئيل إِذَا حِضْتِ فَأَنْتِ طَالِقٌ چې کله ته حائضه شې.نو ته طالقه نې فَرَأَتِ الدَّمَ بيا هغې وينه اوکتله لَمْ يَقَعِ الطَّلَاقُ حَتَّى يَسْتَمِرَّ بِهَا ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ نو طلاق به نه واقع كيږی .تردې چې درې ورځو پورې برابر جاری پاتې شی

**تشريح:**- كه خاوند خپلې ښځې ته اووئيل.[إن حضت فانت طالق] اوښځې وينه اوليدله.نوصرف په وينې ليدو سره طلاق نه واقع كيږی .ترڅوچه په دې درې ورځې تيرې شوې نه وی .

لِأَنَّ مَا يَنْقَطِعُ دُونَهَا لَا يَكُونُ حَيْضًا ځکه چې کومه وينه د درې ورځو نه په کم کې منقطع شی .هغه حيض نه فَإِذَا تَمَّتْ ثَلَاثَةُ أَيَّامٍ نو كله چې درې ورځې پوره شی حَكَمْنَا بِالطَّلَاقِ مِنْ حِينِ حَاضَتْ نود هغه وخت څخه به هغه حائضه وی .د هغه وخت څخه به د طلاق حکم ورکوو لِأَنَّهُ بِالِامْتِدَادِ عُرِفَ أَنَّهُ مِنَ الرَّحِمِ ځکه چې ( درې ورځو پورې) د ممتد كيدلو په وجه معلومه شوه.چه دا وينه د رحم فَكَانَ حَيْضًا مِنَ الِابْتِدَاءِ نودا د پيل نه حيض شو.

**حل اللغة*** ① الامتداد: اوږدوالي ]

**تشريح:**-دليل دا دې.چه زموږ په نيزد حيض کمه موده درې ورځې اودرې شپې دی .اوکومه وينه چې ددې مودې نه په کم وخت کي اودريږی .نوهغه به حيض نه وی .بلکه استحاضه به وی .

[1]البته كه پوره درې ورځې وينه راغله.دکوم وخت نه چې وينه راتګ پيل شوی وی .هم دهغه وخت څخه به د طلاق واقع كيدل حسابيږی .ځکه چې درې ورځې وينه اوږده شوه.نودا ددې خبرې دليل دې.چه وينه د رحم نه راغلې ده.نود اول څخه به حيض حسابيږی .

## په [إذا حضت حيضة] سره د طلاق واقع كيدو حکم

وَلَوْ قَالَ لَهَا او كه ښځې ته نې اووئيل إِذَا حِضْتِ حَيْضَةً فَأَنْتِ طَالِقٌ چې کله ته حائضه شې.يو حيض سره.نو ته طالقه نې لَمْ تَطْلُقْ حَتَّى تَطْهُرَ مِنْ حَيْضَتِهَا نودا ( ښځه) به طالقه نه وی .تردې چې ددې حيض نه پاکه شی

**تشريح:**- مسئله دا ده.چه يوکس خپلې ښځې ته اووائی .[إذا حضت حيضة فأنت طالق] نودا ښځه به مطلقه نه وی .ترڅوچه د حيض نه پاکه شوې نه وی .



لِأَنَّ الْحَيْضَةَ بِالْهَاءِ هِيَ الْكَامِلَةُ مِنْهَا ځکه چې حيضة د هاء ( تاء) سره کامل حيض دې وَلِهَذَا حُمِلَ عَلَيْهِ فِي حَدِيثِ الِاسْتِبْرَاءِ [1] اوهم په دې وجه به په کامل حيض باندې محمول كولې شی .په حديث د استبراء کي وَكَمَالُهَا بِانْتِهَائِهَا اود حيض كمال ددې په انتهاء سره كيږی وَذَلِكَ بِالطُّهْرِ او انتهاء په طهر سره كيږی .

**تشريح:**-دليل دا دې.چه حيضة په تاء سره حيض كامل ته وائی .اود حيض كمال به دهغې په ختميدوسره حاصليږی .اوختميدل په طهرسره راځی .ددې امله موږ وايو.چه دطهرپه پيل كيدو به طلاق واقع كيږی . ددې نه وړاندې نه.هم ددې امله نه په حديث استبراء کي هم حيضة په حيض کامل باندې حمل شوې دې.دحديث استبراء نه مراددا حديث دې.[لا توطأ الحبالى حتى يضعن حملهن ولا الحبالى حتى يستبرآن بحيضة، رواه ابوداؤد في سننه] نبی ﷺ فرمائيلی دی .چه حامله ښځوسره به وطی نشی كولې.تردې چې هغوی خپل حمل اوزيږوی .اووطی به نشی كولې غيرحامله ښځوسره تردې چې يوكامل حيض سره نې استبراء د رحم راشی .په دې حديث کي د حيضة نه مراد كامل حيض دې.(عنايه شرح هدايه)

## په [أنت طالق إذا صمت يوماً] دطلاق واقع كيدوحكم

وَإِذَا قَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ إِذَا صُمْتِ يَوْمًا او کله نې چې اووئيل.ته طالقه نې.کله چې تا د يوې ورځې روژه اونيوله طَلُقَتْ حِينَ تَغِيبُ الشَّمْسُ فِي الْيَوْمِ الَّذِي تَصُومُ نود لمر پريوتلو سره به ( فوراً) مطلقه كيږی .په هغه ورځ کي په كومه ورځ چې روژه اونيسی

**تشريح:**- كه يوكس خپلې ښځې ته اووئيل.[أنـت طـالق إذا صـمت يومـا] اوهغې روژه اونيوله.نوچه څنګه نمرپريوځی .دا طلاقه شوه.

لِأَنَّ الْيَوْمَ إِذَا قُرِنَ بِفِعْلٍ مُمْتَدٍّ ځکه چې ورځ کله د فعل ممتد سره مقترن وی يُرَادُ بِهِ بَيَاضُ النَّهَارِ نو په دې سره بياض نهار مراد وی

**حل اللغة*** ① بياض: سپينوالي ② النهار: ورځ ]

**تشريح:**-قاعده دا ده.چه کله لفظ د يوم دفعل ممتد سره يوځائې شی .نود يوم نه مراد د ورځې رڼا وی .مطلق وخت نه وی .اودلته صوم فعل ممتد دې.نود يوم نه مراد د روځې رڼا وی .اود طلاق واقع كيدو لپاره به د نمرپريوتوپورې پوره ورځ روژه نيول شرط وی .نوچه څنګه شرط موجود شی .طلاق به واقع شی .اوهم دا حكم د [أنت طالق إذا صمت يوماً] دې.

بِخِلَافِ مَا إِذَا قَالَ إِذَا صُمْتِ په خلاف ددې صورت.كله چې ښځې ته اووائی .کله چې ته روژه اونيسې لِأَنَّهُ لَمْ يُقَدَّرْ بِمِعْيَارٍ ځکه چې روژه نې د هيڅ معيار سره اندازه کړې نه ده وَقَدْ وُجِدَ الصَّوْمُ بِرُكْنِهِ وَشَرْطِهِ او روژه خپل ركن او شرط سره اوموندې شوه.

**تشريح:**-ددې په خلاف كه خاوند [أنت طالق إذا صمت] اووئيل.اود يوم ذكرنې په کي اونكړلو.نوپه دې صورت كښې كه دا لږ وخت د روژې په نيت پاتې شوه.نوهم به طلاق واقع كيږی .ځکه چې خاوند روژه په څه مقداريعنی ورځ وغيره پورې معلق نكړله.اومطلقاً روژه د خپل ركن اوشرط سره موجود شوه.نوځکه به طلاق واقع كيږی .د روژې ركن د خوراك څکاك اوجماع نه منع كيدل دی .اوشرط نيت اود حيض اونفاس نه پاكې ده.

## د [إذا ولدت غلاماً فانت طالق واحدة إلخ] حكم

وَمَنْ قَالَ لِامْرَأَتِهِ اوكوم سړی چې خپلې ښځې ته اووئيل إِذَا وَلَدْتِ غُلَامًا فَأَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً چې كله تا هلك

[1] من حديث أبى سعيد الخدرى رضي الله عنه أخرجه أبوداود فى سننه فى النكاح باب ۴۳ رقم ۲۱۵۷).

راوړلو.نو ته طالقه په يو طلاق ئې وَإِذَا وَلَدَتْ جَارِيَةً فَأَنْتِ طَالِقٌ ثِنْتَيْنِ،اوكه انجلى دې راوړله.نو ته طالقه په دوې [دوه] طلاقو ئې فَوَلَدَتْ غُلَامًا وَجَارِيَةً نودې ښځې هلك او انجلى دواړه راوړل وَلَا يَدْرِي أَيُّهُمَا أَوَّلُ معلومه نه ده.چه ړومبې څوك دې لَزِمَهُ فِي الْقَضَاءِ تَطْلِيقَةٌ نو دې ته قضاءً يو طلاق لازم شو وَفِي التَّنَزُّهِ تَطْلِيقَتَانِ او (دا) او تنزهاً (احتياطاً) به دوې [دوه] طلاقونه (لازم وى). وَانْقَضَتِ الْعِدَّةُ او عدت تير شو بِوَضْعِ الْحَمْلِ په وضع د حمل سره

تشريح:- مسئله دا ده.كه خاوند خپلې ښځې ته اووئيل.[اذا ولدت غلاماً فانت طالق واحدة واذا ولدت جارية فانت طالق ثنتين] اوښځې هلك اوانجلى دواړه اوزيږلو.نوپه دې مسئله كي څو صورتونه دى .

① كه دا معلومه شوه.چه هلك وړاندې پيدا شوې دې.نويوطلاق به واقع كيږى .اوددې ښځې عدت به دانجلى د ولادت په ولادت باندې پوره كيږى .ځكه چې د حاملې عدت وضع دحمل ده.اوددې نه روسته به بل طلاق نه واقع كيږى. ② اوكه دا معلومه وى .چه انجلى وړاندې پيدا شوې ده.نودوې [دوه] طلاقه به واقع كيږى. ③ اوكه د ښځې او خاوند اختلاف شو.خاوندوائى .چه هلك وړاندې پيدا شوې دې.اوښځه وائى .چه انجلى وړاندې پيدا شوې ده.نود خاوند قول به معتبروى .ځكه چې دې د زيادت نه منكر دې. ④ اوكه معلومه نه وى .چه وړاندې څوك پيدا شوې دى .لكه څنګه چې د كتاب مسئله ده.نوپه دې صورت كي به قضاء يوطلاق واقع كيږى .ځكه چې ديوطلاق واقع كيدل يقينى دى .اوددېم په واقع كيدو كي شك دې.البته ديانة اوتنزهاً دوې [دوه] طلاقه واقع كيږى .

لِأَنَّهَا لَوْ وَلَدَتِ الْغُلَامَ أَوَّلًا ځكه چې دې مخكې هلك راوړو وَقَعَتْ وَاحِدَةٌ نو يو واقع شو وَتَنْقَضِي عِدَّتُهَا بِوَضْعِ الْجَارِيَةِ او ددې عدت تيريږى .د انجلى په پيداكيدلو سره ثُمَّ لَا تَقَعُ أُخْرَى بِهِ بيا د انجلى په پيدا كيدو به دوهم نه واقع كيږى لِأَنَّهُ حَالُ انْقِضَاءِ الْعِدَّةِ ځكه چې دا د عدت تيريدلو وخت دې

حل اللغة: ① الجارية: انجلى ② الغلام:هلك ③ منقضية: ختمه شوې ]

تشريح:-دليل دا دې.كه اول هلك پيدا شوې وى .نويوطلاق واقع شو.اودانجلى په پيدا كيدوسره عدت پوره شو.ځكه چې د هلك پيدا كيدو نه روسته دا ښځه حامله وه.اود حاملې عدت وضع د حمل ده.اودانجلى په پيدا كيدوبه بل طلاق نه واقع كيږى .ځكه چې دا وخت د عدت ختميدو وخت دې.اودعدت ختميدووخت دنكاح د زوال وخت دې.اود مزيل د زوال په وخت كي څه عمل نه كوى .

وَلَوْ وَلَدَتِ الْجَارِيَةَ أَوَّلًا اوكه مخكې ئې انجلى پيدا شوه وَقَعَتْ تَطْلِيقَتَانِ نو دوې [دوه] طلاقونه به واقع وى وَانْقَضَتْ عِدَّتُهَا بِوَضْعِ الْغُلَامِ او ددې عدت به د هلك په پيدا كيدو سره پوره كيږى ثُمَّ لَا يَقَعُ شَيْءٌ آخَرُ بِهِ لِمَا ذَكَرْنَا بيا به ددې په وجه دوهم نه واقع كيږى .د هغه دليل په وجه كوم چې موږ ذكركړې دې أَنَّهُ حَالُ انْقِضَاءِ الْعِدَّةِ چې (د هلك پيداكيدلو وخت) د عدت تيريدلو وخت دې فَإِذَا فِي حَالٍ تَقَعُ وَاحِدَةٌ نو په دې وخت به په يو حالت كي يو واقع كيږى كيږى وَفِي حَالٍ تَقَعُ ثِنْتَانِ او په يو حالت كي به دوې [دوه] واقع كيږى فَلَا تَقَعُ الثَّانِيَةُ بِالشَّكِّ وَالِاحْتِمَالِ نو دوهم به د شك او احتمال په وجه نه واقع ،وَالْأَوْلَى أَنْ يُؤْخَذَ بِالثِّنْتَيْنِ تَنَزُّهًا وَاحْتِيَاطًا،او غوره داده.چه موږ دوې [دوه] اختيار كړو.تنزهاً او احتياطاً وَالْعِدَّةُ مُنْقَضِيَةٌ بِيَقِينٍ لِمَا بَيَّنَّا او عدت باليقين ختم شو.د هغه دليل په وجه كوم چې موږ بيان كړې دې.

تشريح:-اوكه انجلى اول پيدا شوې وى .نودوې [دوه] طلاقه به واقع وى .اود هلك په پيدا كيدوبه ئې عدت پوره شى .ځكه چې دا ښځه د انجلى د پيدا كيدو نه روسته هم حامله ده.اودحاملې عدت وضع دحمل ده.نود هلك په پيدا كيدو به دوهم طلاق نه واقع كيږى .د وړاندينى دليل د وجې.چه دا د عدت ختميدو [وخ]ت دې. لنهيز دا چې په يوحالت كي به يوطلاق واقع كيږى .اوبل حالت كي به دوې [دوه] طلاقه واقع



كيږى .اود يو واقع كيدل په يقين سره دې.اود دوو واقع كيدلوكي شك دې.اودشك په وجه طلاق نه واقع كيږى .نوځكه به قضاء يوطلاق واقع كيږى .اوبهتره دا ده.چه د احتياط د امله دوې [دوه] طلاقه واقع شى .اوعدت په يقين سره تيرشى .د ذكرشوى دليل د وجې.

## د دووكسانوسره په خبروكولوپورې طلاق معلق كول

وَإِنْ قَالَ لَهَا اوكه خاوند خپلې منكوحې ته اووئيل إِنْ كَلَّمْتِ أَبَا عَمْرٍو وَأَبَا يُوسُفَ كه تا ابوعمرو او ابويوسف سره كلام اوكړو فَأَنْتِ طَالِقٌ ثَلَاثًا نو ته مطلقه ثلاثه ئې ثُمَّ طَلَّقَهَا وَاحِدَةً بيا ئې دې ته يو طلاق وركړو فَبَانَتْ نودا به بائنه شوه وَانْقَضَتْ عِدَّتُهَا او ددې عدت پوره شو فَكَلَّمَتْ أَبَا عَمْرٍو بيا ئې كلام اوكړو.د ابوعمرو سره ثُمَّ تَزَوَّجَهَا بيا ئې ددې سره نكاح اوكړله فَكَلَّمَتْ أَبَا يُوسُفَ بيا ئې د ابويوسف سره كلام اوكړو فَهِيَ طَالِقٌ ثَلَاثًا مَعَ الْوَاحِدَةِ الْأُولَى نودا ښځه مطلقه ثلاثه ده.د ړومبى يو سره وَقَالَ زُفَرُ رَحِمَهُ اللهُ لَا يَقَعُ او امام زفر رحمه الله فرمائى .چه درې به واقع كيږى

تشريح:- مسئله دا ده.چه زيد خپلې ښځې ته اووئيل.[ان كلمت ابا عمرو وابايوسف فانت طالق] بيا ورته خاوند طلاق وركړلو.اوهغه بائنه شوه.اوعدت ئې پوره شو.بيا ښځې د ابوعمروسره په داسې حالت كي خبرې اوكړې.چه دا په نكاح كي نه وه.بيا ئې دا ښځه په نكاح كي واخستله.اوبيا ئې دابويوسف سره په داسې حال كي خبرې اوكړلې.چه هغه دده په نكاح كي وه.نوپه دې صورت كي به داولنى يوطلاق سره ملاويږى اودرې طلاقه به واقع كيږى .اوامام زفر رحمه الله فرمائى .چه نه واقع كيږى .

وَهَذِهِ عَلَى وُجُوهٍ اودا مسئله په يوڅو صورتونو سره ده أَمَّا إِنْ وُجِدَ الشَّرْطَانِ فِي الْمِلْكِ يا خو به دواړه شرطونه په ملك كي موندلې شى .( يعنى ابوعمرو او ابويوسف دواړو سره به د نكاح په حالت كي كلام كوى ) فَيَقَعُ الطَّلَاقُ وَهَذَا ظَاهِرٌ نو طلاق به واقع كيږى .اودا ښكاره ده أَوْ وُجِدَا فِي غَيْرِ الْمِلْكِ يا به دواړه په غيرملك كي موندلې شى فَلَا يَقَعُ نو نه به واقع كيږى ،أَوْ وُجِدَ الْأَوَّلُ فِي الْمِلْكِ وَالثَّانِي فِي غَيْرِ الْمِلْكِ يا به اول په ملك كي او دوهم په غيرملك كي موندلې شى فَلَا يَقَعُ أَيْضًا نو بيا به هم نه واقع كيږى لِأَنَّ الْجَزَاءَ لَا يَنْزِلُ فِي غَيْرِ الْمِلْكِ فَلَا يَقَعُ ځكه چې جزاء په غير ملك كي نه نازليږى .نو نه به واقع كيږى أَوْ وُجِدَ الْأَوَّلُ فِي غَيْرِ الْمِلْكِ وَالثَّانِي فِي الْمِلْكِ يا اول په غير ملك كي او دوهم په ملك كي اوموندلې شى وَهِيَ مَسْأَلَةُ الْكِتَابِ الْخِلَافِيَّةُ اوهم دا د كتاب مختلف فيه مسئله ده

تشريح: صاحب دهدايه رحمه الله فرمائى .چه په دې مسئله كي څو صورتونه دى . ① اول دا چې دوې [دوه] شرطونه په ملك كي واقع شى .په دې صورت كي په اتفاق سره طلاق واقع كيږى .ځكه چې دطلاق شرط په ملك كي موجود شو. ② دوهم دا چې دواړه شرطونه په غيرملك كي موجود شى .په دې صورت كي په اتفاق سره طلاق نه واقع كيږى. ③ دريم دا چې اول شرط په ملك او دوهم په غيرملك كي موجود شى .په دې صورت كي هم طلاق نه واقع كيږى .دليل دا دې.چه جزاء يعنى طلاق په غيرملك كي موجود شوې دې.نوطلاق نه واقع كيږى

لَهُ اعْتِبَارُ الْأَوَّلِ بِالثَّانِي د امام زفر رحمه الله دليل دادې.چه د اول په دوهم باندې قياس دې إِذْ هُمَا فِي حُكْمِ الطَّلَاقِ كَشَيْءٍ وَاحِدٍ ځكه چې دواړه د طلاق په حكم كي د شئ واحد پشان دى

تشريح:- په كتاب كي دامام زفر رحمه الله دليل داولنى شرط په دوهم شرط باندې قياس كول دى .ددې دوې [دوه] مطلبه دى . ① يودا كه دوهم شرط په ملك كښې موجود شى .نوطلاق نه واقع كيږى .نودغه ډول كله چې اول شرط په غيرملك كي واقع شى .نوطلاق به نه واقع كيږى . ② د اول په دوهم باندې د قياس كولو دوهم مطلب دا دې.چه لكه څنګه د دوهم شرط په وخت كي د وقوع طلاق لپاره ملك شرط دې.نودغه ډول د اولنى

شرط په وخت هم د وقوع طلاق لپاره ملك پكارده چې شرط وی .نوځکه دا دواړه شرطونه د طلاق په حکم (یعنی طلاق به په دواړو باندې واقع کیږی ) په یوه مرتبه کي دی .اوکه شرط یووی .نود ملك نه بغیرطلاق نه واقع کیږی .دغه ډول دلته به هم بغیرملکه طلاق نه واقع کیږی .

وَلَنَا أَنَّ صِحَّةَ الْكَلَامِ بِأَهْلِيَّةِ الْمُتَكَلِّمِ او دلیل دادې.چه د کلام صحیح کیدل د متکلم په لیاقت سره دی

تشریح:- زمونږدلیل دا دې.چه د کلام یمین صحیح کیدل د متکلم دلیاقت اوذهانت سره تعلق ساتی .اومتکلم د دې وجه چې عاقل بالغ دې.د یمین اهلیت لری .نوځکه به کلام یمین صحیح وی .اوددې یمین محل د حالف ذمه ده.

إِلَّا أَنَّ الْمِلْكَ يُشْتَرَطُ حَالَةَ التَّعْلِيقِ مگر داچه د ملك شرط اوکړې شو.د تعلیق په وخت. لِيَصِيرَ الْجَزَاءُ غَالِبَ الْوُجُودِ لِاسْتِصْحَابِ الْحَالِ فَتَصِحُّ الْيَمِينُ، چې جزاء غالب الوجود شی .د استصحاب حال په وجه.چه قسم صحیح وی وَعِنْدَ تَمَامِ الشَّرْطِ لِيَنْزِلَ الْجَزَاءُ اود شرط پوره کیدلو په وخت چې جزاء نازل شی لِأَنَّهُ لَا يَنْزِلُ إِلَّا فِي الْمِلْكِ خکه چې جزاء نه نازلیږی .خو په ملك کي ( نازلیږی ) وَفِيمَا بَيْنَ ذَلِكَ الْحَالُ حَالُ بَقَاءِ الْيَمِينِ او ددې دواړو په منځ کي بقاء د یمین حالت دې فَيَسْتَغْنِي عَنْ قِيَامِ الْمِلْكِ نو قسم به د ملك د قیام نه مستغنی وی إِذْ بَقَاؤُهُ بِمَحَلِّهِ وَهُوَ الذِّمَّةُ خکه چې د قسم بقاء خپل محل سره ده.او هغه ( د حالف) ذمه ده

تشریح:- په[ إلا أن الملك] سره دیوسوال خواب دې.سوال دا دې.چه هرکله د صحت یمین لپاره د متکلم اهلیت کافي دې.اومحل د یمین د حالف ذه ده.نوبیا دتعلیق په وخت کي دملك شرط ولې اولګولې شو.

①خواب دا دې.چه د تعلیق په وخت کشي دملکیت دبقاء شرط ددې امله لګولې شوې دې.چه جزاء غالب الوجود شی .دلیل د استصحاب حال د امله دې.استصحاب حال دې ته وائی .[إبقاء ما كان على ما كان لعدم الدليل المزيـل] یعنی د زائله کونکی دلیل د عدم وجود د امله څیزهم هغه شان پاتې شی .ځکه چې حاصل دا دې.چه کله د تعلیق په وخت کي ملك موجود دې.نوغالب ګمان هم دا دې.چه د شرط د وجود په وخت کي به هم موجود وی .نویمین صحیح شو.اود شرط پوره کیدو په وخت کي د ملکیت شرط ددې امله اولګولې شو.چه جزاء مرتب شی .یعنی متحقق شی .ځکه چې وجود د جزاء په ملك کي متحقق کیږی په غیرملك کي نه.ددې دواړوحالتونوپه مینځ کي دیمین حالت دې.اوبقاء د یمین د ملك محتاج نه ده.ځکه چې د یمین بقاء د هغې د محل سره وی .اومحل د حالف ذمه ده.کومه چې هروخت موجوده ده.نوځکه په مینځنۍ زمانه کي ملکیت لازم نشی ګرخولې.والله اعلم بالصواب.

ه [إن دخلت الدارفانت طالق ثلاثاً إلخ] حکم

وَإِنْ قَالَ لَهَا اوکه سړی خپلې ښځې ته اوونیل. إِنْ دَخَلْتِ الدَّارَ که ته په کورکي داخله شوې فَأَنْتِ طَالِقٌ ثَلَاثًا نو ته په درې طلاقو سره مطلقه ئې فَطَلَّقَهَا اثْنَتَيْنِ بیا هغې ته دوې [دوه] طلاقه ( منجز) ورکړې وَتَزَوَّجَتْ زَوْجًا آخَرَ او دغه ښځې بل خاوند سره نکاح اوکړله وَدَخَلَ بِهَا او ددې سره ئې دخول اوکړو ثُمَّ عَادَتْ إِلَى الْأَوَّلِ بیا هغه ړومبی خاوند ته واپس راغله فَدَخَلَتِ الدَّارَ بیا په کورکي داخله شوه طُلِّقَتْ ثَلَاثًا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُمَا اللَّهُ تَعَالَى نو هغه به په درې طلاقو سره مطلقه وی .

تشریح:-صورت د مسئلې دا دې.چه خاوند خپلې ښځې ته اوونیل.[إن دخلت الدارفانت طالق ثلاثا] بیائې ورته دوې [دوه] طلاقه منجز دستی ورکړل.دې د عدت نه روسته د دوهم خاوند سره نکاح اوکړله.اود دوهم خاوند ددخول نه روسته دهغه نه طلاقه شوه.اوعدت ئې تیرکړلو.اوبیا د اولنی خاوند په نکاح کي راغله.اودا هغه کور ته داخله شوه.① نود شیخینو رحمهما الله په نیزپه دې باندې درې طلاقه واقع کیږی .

وَقَالَ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللَّهُ تَعَالَى عَلَيْهِ: هِيَ طَالِقٌ مَا بَقِيَ مِنَ الطَّلَقَاتِ اوامام محمد رحمه الله فرمائی .چه هغه په،مابقی



من الطلقات،( یو) سره طالقه ده وَهُوَ قَوْلُ زُفَرَ رَحِمَهُ اللَّهِ تَعَالَى عَلَيْهِ او هم دا قول د امام زفر رحمه الله دې کیږی فَتَعُودُ إِلَيْهِ بِمَا بَقِيَ نو هغه به دده اړخ ته مابقی سره واپس ،وَسَنُبَيِّنُ مِنْ بَعْدُ إِنْ شَاءَ اللَّهُ تَعَالَى او موږ به انشاءالله عنقریب بیان کړو.

تشریح:- اودامام محمد رحمه الله په نیزمابقی یعنی یوطلاق واقع کیږی .اوداد امام زفر رحمه الله قول دې.اوامام شافعی مالك اواحمد رحمهم الله هم ددې قائلین دی .

وَأَصْلُهُ اود اختلاف اصل دادې أَنَّ الزَّوْجَ الثَّانِي يَهْدِمُ مَا دُونَ الثَّلَاثِ عِنْدَهُمَا چې دوهم خاوند د شیخینو رحمهما الله په نیز مادون الثلاث منهدم کوی . فَتَعُودُ إِلَيْهِ بِالثَّلَاثِ نو هغه به ړومبی خاوند اړخ ته ( نوی ) درې طلاقونو سره واپس کیږی وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ وَزُفَرَ رَحِمَهُمَا اللَّهُ تَعَالَى لَا يَهْدِمُ مَا دُونَ الثَّلَاثِ اود امام محمد او امام زفر رحمهما الله په نیز( دوهم خاوند) مادون الثلاث نه منهدم کوی

حل اللغة: ① یهدم:نوړوی ،ختموی ]

تشریح:- بنا (بنیاد) داختلاف دا دې.چه دشیخینو رحمهما الله په نیز دوهم خاوند د درې طلاقونه کم ختموی .نودا ښځه به اولنی خاوند ته په درې طلاقوسره واپس کیږی .اودامام محمد رحمه الله په نیزد دوهم خاوند سره نکاح د دریونه کم طلاقونه نه ختموی .نودا ښځه به د دریونه د کموطلاقونوسره راواپس کیږی .دا مسئله به په تفصیل سره روستو انشاء الله راشی .

## [إن دخلت الدارفانت طالق ثلاثاً] وئیل اوبیا غیرمعلق درې طلاقه ورکول

وَإِنْ قَالَ لَهَا اوکه ښځې ته ئې اوونیل إِنْ دَخَلْتِ الدَّارَ که ته په کورکي داخله شوې فَأَنْتِ طَالِقٌ ثَلَاثًا نو ته په درې طلاقو سره طالقه ئې ثُمَّ قَالَ لَهَا: أَنْتِ طَالِقٌ ثَلَاثًا بیا ئې اوونیل.ته مطلقه ثلاثه ئې فَتَزَوَّجَتْ غَيْرَهُ بیا دده نه علاوه ( بل خاوند) سره نکاح اوکړله وَدَخَلَ بِهَا او( دوهم خاوند) ددې سره دخول هم اوکړو ثُمَّ رَجَعَتْ إِلَى الْأَوَّلِ بیا هغه ړومبی خاوند اړخ ته واپس ( په نکاح کي ) راغله فَدَخَلَتِ الدَّارَ بیا په کورکي داخله شوه. لَمْ يَقَعْ شَيْءٌ نو هیڅ طلاق به نه واقع کیږی

تشریح:-صورت د مسئلې دا دې.چه یوکس خپلې ښځې ته اوونیل.[إن دخلت الدارفانت طالق ثلاثـا] اوددې نه روسته ئې ورته [أنت طالق ثلاثا] اوونیل.یعنی بالفعل ئې درې طلاقه ورکړل.اودې ددې درې طلاقونه روسته عدت تیرکړلو.اوبیا ئې بل خاوند سره نکاح اوکړلـه.اوهغې پرې دخول هم اوکړلو.بیا ورته هغه طلاق ورکړلو.اودې عدت تیرکړلو.اوبیاد اولنی خاوند په نکاح کي راغلـه.اوبیا هغه کورته داخله شوه.نوزموږ د درې واړو امامانوپه نیزهیڅ طلاق نه واقع کیږی .

وَقَالَ زُفَرُ رَحِمَهُ اللَّهِ تَعَالَى عَلَيْهِ: يَقَعُ الثَّلَاثُ او امام زفر رحمه الله فرمائی .چه درې ( طلاقه) واقع کیږی لِأَنَّ الْجَزَاءَ ثَلَاثٌ مُطْلَقٌ لِإِطْلَاقِ اللَّفْظِ،ځکه چې جزاء د ثلاث مطلق ده.د لفظ ( ثلاث) د اطلاق په وجه وَقَدْ بَقِيَ احْتِمَالُ وُقُوعِهَا اود طلاقونو د واقع کیدلو احتمال پاته دې فَتَبْقَى الْيَمِينُ نو قسم به هم پاته پاتې وی

تشریح:- په زیر بحث مسئله کي امام زفر رحمه الله فرمائی .چه درې طلاقه به واقع کیږی . دلیل دا دې.چه جزاء ثلاث مطلق ده.اودا اطلاق د ثلث د لفظ د مطلق والی د امله دې.نودا کلام مطلقاً درې طلاقوته ګډ دې.که فی الحال دده په ملك کښی وی .اوکه په راروانه زمانه کي . او لفظ مطلق مقید ته نه شاملیږی .ځکه چې مقید د مطلق ضد دې.نومطلق درې طلاقه د موجوده ملك سره مقید نه دی .اودمطلق درې طلاقوواقع کیدو احتمال هم وو.په دې طریقه چې د دوهم خاوند سره د نکاح نه روسته.دا بیا په خپله نکاح کي راولی .نوهرکله چې یمین پاته دې.اومحل (ښځه) موجود دې.نوجزاء (درې طلاقه) به واقع کیږی .

وَلَمَّا أَنَّ الْجَزَاءَ طَلَقَاتُ هٰذَا الْمِلْكِ او زموږ دليل دادې.چه جزاء ددې ملك ( درې) طلاقه دى لِأَنَّهَا هِيَ الْمَانِعَةُ ځکه چې هم دا درې طلاقونه ( د دخول دار نه) منع کونکی دی . لِأَنَّ الظَّاهِرَ عَدَمُ مَا يَحْدُثُ ځکه چې کوم ملك ( د دوهم خاوند نه پس) پيدا شی .هغه په ښکاره معدوم دې وَالْيَمِينُ تُعْقَدُ لِلْمَنْعِ أَوِ الْحَمْلِ او يمين منعقد کيږی .( د يوکار نه) منع کاوه دپاره.يا ( د يوکار کاوه باندې) اماده کاوه لپاره ،وَإِذَا كَانَ الْجَزَاءُ مَا ذَكَرْنَاهُ اوهرکله چې جزاء هغه ده.کومه چې موږ ذکرکړله وَقَدْ فَاتَ بِتَنْجِيزِ الثَّلَاثِ الْمُبْطِلِ لِلْمَحَلِّيَّةِ حالانکه ( جزاء) فوت شوه.درې طلاقه بالفعل ور کاوه سره، کوم چې محليت باطلونکی دی فَلَا تَبْقَى الْيَمِينُ نو قسم به هم پاته نه پاتې کيږی

تشريح:- زمونږدليل دا دې.چه جزاء مطلق درې طلاقه نه دی .بلکه د موجوده ملك درې طلاقه دی .ځکه چې جزاء هغه وی .چه هغه د شرط د وجود نه منع کونکې يا د شرط په وجود باندې آماده کونکې وی .ځکه چې يمين په دې دوو مقصدونوکي د يو لپاره منعقد کولې شی .اودلته د دخول دارنه منع کونکی هم ددې ملك درې طلاقه دی .اوکوم ملك چې د زوج ثانی سره د نکاح نه روسته پيدا کيږی .هغه فی الحال معدوم دې.بهرحال دا معلومه شوه.چه جزاء هم ددې ملك درې طلاقه دی .اوددې ملك درې طلاقه خاوند بالفعل ورکړی دی .نويمين پاته پاتې نشو.ځکه چې ديمين بقاء د شرط اوجزاء د بقاء سره ده.اوجزاء کوم چې د يمين يوجزء دې.هغه فوت شوې ده.اودا قاعده ده.چه د جزاء په فوت کيدو سره کل فوت کيږی .ددې امله هم يمين فوت شو.اوچه يمين پاته پاتې نشو.نوکه ښځه کورته داخله شی .په دې باندې څه واقع کيږی هم نه.

بِخِلَافِ مَا إِذَا أَبَانَهَا .په خلاف د هغه صورت.کله چې دا بائنه کړې وی لِأَنَّ الْجَزَاءَ بَاقٍ لِبَقَاءِ مَحَلِّهِ ځکه چې جزاء پاته ده.ددې محل پاته کيدلو په وجه.

حل اللغة: ① ابان:جدا کړه ② باق:پاته ده ]

تشريح:- ددې په خلاف کې که خاوند د [إن دخلت الدارفانت طالق ثلاثاً] اوونيل.اودهغې نه روسته ئې دا ښځه په يوطلاق يا دوو طلاقوسره بائنه کړله.اوبيا د دوهم خاوند سره د نکاح نه روسته ئې د اول خاوند سره نکاح اوکړله.نواوس هم وړاندينې قسم پاته پاتې دې.ځکه چې دمحل د پاته پاتې کيدو د امله يمين هم پاته پاتې شو.نواوس که دا ښځه دغه کورته ورداخله شوه.نودرې طلاقه به واقع کيږی .والله اعلم بالصواب

## په جماع کولو پورې د طلاق تعليق کول

وَلَوْ قَالَ لِامْرَأَتِهِ اوکه ( يوکس) خپلې ښځې ته اوونيل إِذَا جَامَعْتُكِ چې کله زه تا سره جماع اوکړم فَأَنْتِ طَالِقٌ ثَلَاثًا نوته دې درې طلاقونوسره طالقه ئې فَجَامَعَهَا يا ده دغه ښځې سره جماع اوکړله فَلَمَّا الْتَقَى الْخِتَانَانِ نو کله چې ختانين خپلوکې ملاؤ شو.( يعنی تواری ، ننوتل ،د حشفې اوشو). طَلُقَتْ ثَلَاثًا نو درې طلاقه واقع شو وَإِنْ لَبِثَ سَاعَةً اوکه هغه لږ وخت ايسار شو لَمْ يَجِبْ عَلَيْهِ الْمَهْرُ نو په ده باندې به مهر واجب نه وی وَإِنْ أَخْرَجَهُ اوکه دا ئې راوښکلو ثُمَّ أَدْخَلَهُ بيا ئې داخل کړو وَجَبَ عَلَيْهِ الْمَهْرُ نو په ده به مهر واجب وی وَإِنْ قَالَ لِأَمَتِهِ اوهم دغه ډول کله ئې چې خپلې وينځې ته اووئيل وَكَذَا إِذَا إِذَا جَامَعْتُكِ فَأَنْتِ حُرَّةٌ چې کله زه تا سره جماع اوکړم.نو ته آزاده ئې

حل اللغة: ① الختان: په ذکر کې سنت کړې شوې ځائې ]

تشريح:- مسئله دا ده.چه خاوند خپلې ښځې ته اوونيل[إذا جامعتك فانت طالق ثلاثاً] بيا ورسره جماع اوکړله.تردې چې د خاوند شرمګاه دښځې په شرمګاه کې غائبه شوه.نوپه ښځه باندې درې طلاقه واقع شول. اوس که دا سړې هم په دې حالت کې لږ وخت ايسارشو.نواګرچه دا ايساريدل حرام دی .خو ددې لږ وخت ايساريدوپه وجه عقر(مهر)نه واجبيږی .



اوکه دې کس خپله شرمګاه دښځې دشرمګاه نه رابهرکړه.اوبيا ئې ورداخله کړه.نوپه دې صورت کې به ددې وطی دحرمت په وجه عقر(مهر) لازم وی .

اوداسې (د دوباره دخول نه بغير) به عقر(مهر)واجب نه وی .کله چې مالك خپلې وينځې ته اووائی .[إذا جامعتك فانت حرة].

دامام ابويوسف رحمه الله دليل دا دې.چه د دخول نه روسته په ايساريدو باندې دوام کول د ابتدائی دخول پشان دی .نولکه چې دې کس د درې طلاقه واجب کيدو نه روسته جماع اوکړله.اوښکاره ده.چه دمطلقه مغلظه سره وطی کول حرام دی .اوپه حرامه وطی باندې عقر(مهر)واجبيږی .نوځکه به په دې صورت کې هم عقر (مهر) واجبيږی .دعقرنه مراد مهرمثل دې.

وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحْمَةُ اللهِ تَعَالَى عَلَيْهِ اود ابويوسف رحمه الله نه ( په نوادرکې ) روايت دې أَنَّهُ أَوْجَبَ الْمَهْرَ فِي الْفَصْلِ الْأَوَّلِ أَيْضًا لِوُجُودِ الْجِمَاعِ بِالدَّوَامِ عَلَيْهِ چې دوی په رومبی صورت کې هم مهر واجب کړې دې.د جماع موجود کيدلو په وجه.په دې باندې د مداومت په ذريعه إِلَّا أَنَّهُ لَا يَجِبُ عَلَيْهِ الْحَدُّ لِلِاتِّحَادِ مګر داچه جماع د فرج په فرج کې د داخلولو نوم دې

تشريح:-اودامام ابويوسف رحمه الله نه په نوادرکې يوروايت دې.چه په اولنی صورت کې هم عقر (مهر) واجبيږی . دامام ابويوسف رحمه الله دليل دا دې.چه د دخول نه روسته په ايساريدو باندې دوام کول د ابتدائی دخول پشان دی .نولکه چه دې کس د درې طلاقه واجب کيدو نه روسته جماع اوکړله.اوښکاره ده.چه دمطلقه مغلظه سره وطی کول حرام دی .اوپه حرامه وطی باندې عقر(مهر)واجبيږی .نوځکه به په دې صورت کې هم عقر (مهر) واجبيږی .دعقرنه مراد مهرمثل دې.

خودلته يواشکال کيږی .هغه دا چې هرکله د دخول نه روسته وخت تيرول دابتدائی دخول په مرتبه کې دی .اودا وطی حرامه ده.اود حرامې وطی په وجه حد زنا واجبيږی .نوپه دې کس باندې هم حد زنا واجبيدل پکاردی .حالانکه امام ابويوسف رحمه الله هم په دې صورت کې د حد دوجوب قائل نه دې.

بيشکه حدزنا واجبيدل پکار وو.خود جماع د يووالی د امله شبه پيدا شوه.يعنی ادخال حلال د لبث حرام سره د مقصود يعنی د قضاء شهوت په اعتبارسره يوشو.نو جماع خو يوه ده.خو ددې اول موجب حد نه دې.البته ددې آخر د حد موجب دې.اوددې اتحاد د امله شبه پيدا شوه.په دې وجه حد ساقط کړې شو.

وَجْهُ الظَّاهِرِ أَنَّ الْجِمَاعَ إِدْخَالُ الْفَرْجِ فِي الْفَرْجِ وَلَا دَوَامَ لِلْإِدْخَالِ، بِخِلَافِ مَا إِذَا أَخْرَجَ ثُمَّ أَوْلَجَ، اود ادخال لپاره هيڅ دوام نشته.په خلاف د هغه صورت کله چې اوباسی .او بيا ئې داخل کړې لِأَنَّهُ وُجِدَ الْإِدْخَالُ بَعْدَ الطَّلَاقِ ځکه چې په دې (صورت) کې ادخال د طلاق نه روسته موندلې شوې دې إِلَّا أَنَّ الْحَدَّ لَا يَجِبُ مګر داچه حد واجب نشو. لِشُبْهَةِ الِاتِّحَادِ بِالنَّظَرِ إِلَى الْمَجْلِسِ وَالْمَقْصُودِ وَإِذَا لَمْ يَجِبِ الْحَدُّ وَجَبَ الْعُقْرُ نو عقر(تاوان) به واجب وی إِذِ الْوَطْءُ لَا يَخْلُو عَنْ أَحَدِهِمَا ځکه چې وطی په دې دواړو کې د يو نه خالی نه ده

حل اللغة: ① الاخراج: راويستل ② الادخال: داخلول ]

تشريح:- اود ظاهرالروايت په وجه استدلال دادې.چه جماع وائی .د سړی شرمګاه د ښځې په شرمګاه کې داخلول.اود درې طلاقونه روسته دا معنی نه موجوديږی .نود وطی حرام د عدم وجود په وجه مهر(عقر) نه واجبيږی .

د[ولادوام للإدخال] مطلب دا دې.چه د دوام لپاره به د ابتداء حکم په هغه وخت کې وی .په کوم ځائې کې چې دوام وی .اوجماع د ادخال نوم.اوادخال لپاره دوام نه وی .نوچه دې کس لاخپله شرمګاه نه وی رابهر کړې دا به يوه جماع شمارلې شی .

البته که دې کس خپله شرمګاه بهرته راويستله. او بيائې ورداخله کړه. نو دا ادخال د طلاق نه روسته شو. ددې امله ددې ښځې لپاره عقرواجبيږي. خوحد زنا په دې صورت کې هم نه واجبيږي. ځکه چې په ادخال اواخراج کې د اتحاد شبه پيدا شوه. ځکه چې د دواړو مجلس هم يودې. اومقصود يعنی پوره کول د شهوت هم يو دې. نوچه حد واجب نشو. عقربه ضرور واجبيږي. ځکه چې د حرامې وطی په وجه په دې دواړوکې يوضرور واقع کيږي. يعنی حد زنا يا عقر.

**وَلَوْ كَانَ الطَّلَاقُ رَجْعِيًّا يَصِيرُ مُرَاجِعًا بِاللُّبْثِ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللّٰهُ** او که طلاق رجعي دې. نو ( دا خاوند) د ايساريدلو په وجه رجوع کونکې نه دې د ابويوسف رحمه الله په نيز **خِلَافًا لِمُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللّٰهُ** () **لِوُجُودِ الْمَسَاسِ** د امام محمد رحمه الله خلاف دې. د مساس موجود کيدلو په وجه

تشريح:- که سړی خپلې ښځې ته اووئيل. [اذا جامعتك فانت طـالق واحـدة] اوددې نه روسته ئې ورسره جماع اوکړله. نوپه دې ښځه باندې طلاق رجعی واقع کيږي. اوس که په دې حالت کې ايسارشو. نوپه اتفاق سره رجعت ثابت شو. خوداابويوسف رحمه الله په نيزنه ثابتيږي. ځکه چې ايساريدل د ابتدائی دخول پشان دی. نود طلاق نه روسته وطی موجود شوه. نورجعت هم ثابت شو. اودامام محمد رحمه الله په نيزد ايساريدو په وجه رجعت نه ثابتيږي. بلکه په دې وجه ثابتيږي. چه سړی په شهوت سره مس اوکړله

**وَلَوْ نَزَعَ ثُمَّ أَوْلَجَ صَارَ مُرَاجِعًا بِالْإِجْمَاعِ لِوُجُودِ الْجِمَاعِ، وَاللّٰهُ تَعَالَى أَعْلَمُ بِالصَّوَابِ** اوکه وي باسلو. بيا ئې داخل کړو. نو بالاجماع به رجوع کونکې وی. د جماع موجود کيدلو په وجه.

حل اللغة* ① النزع: ويستل ② اولج: داخل کړو]

تشريح:- اوکه دې کس د دخول نه روسته دوباره دخول اوکړلو. نوپه اتفاق سره رجعت ثابت شو. ځکه چې جماع موجود شوه. يعنی ادخال د ذکرپه فرج کې.

## په طلاق کې د انشاء الله وئيلو حکم

**فَصْلٌ: فِي الْاِسْتِثْنَاءِ** ( دا) فصل د استثناء ( دحکم) ( په بيان کې ) دې **وَإِذَا قَالَ الرَّجُلُ لِامْرَأَتِهِ** او کله ئې چې خپلې ښځې ته اووئيل **أَنْتِ طَالِقٌ إِنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالَى مُتَّصِلًا** انت طالق انشاءالله تعالی، متصل **لَمْ يَقَعِ الطَّلَاقُ** نو طلاق به نه واقع کيږي.

تشريح:- د استثناء معنی ده. [تکلم بالباته بعدالثنياء] يعنی د استثناء نه روسته په پاته کلام تکلم کول. چونکه تعليق د کل کلام لپاره مانع وو. اواستثناء دبعضې کلام دپاره. نوتعليق اقوی شود استثناء نه. اواقوی مقدم وی په قوی باندې. نوځکه ئې تعليق وړاندې بيان کړلو. اواستثناء پس.

اوچونکه مسئله ان شاءالله صورة تعليق دې. ځکه ئې د استثناء په اول فصل کې ذکرکړله. چه تعليق سره نزدې شی. اوچونکه الله تعالی د انشاءالله نوم استثناء کيخودې دې. فرمانيلې ئې دی. ((وَلَا يَسْتَثْنُونَ)) اومراد ددې نه [ان شاء الله] وئيل دی. نوځکه ئې مسئله د انشاءالله د استثناء په فصل کې بيان کړې ده.

په دې اړه کې اختلاف دې چه انشاء الله وئيل د کلام سابق ابطال دې اوکه تعليق. ① امام ابويوسف رحمه الله داول قائل دې ② اوامام محمد رحمه الله د دويم.

صورت د مسئلې سړی خپلې ښځې ته اووئيل. [انت طالق انشاء الله تعـالی] اولفظ دانشاء الله ئې د [انـت طالق] سره متصل اووئيل. نوطلاق نه واقع کيږي.

**لِقَوْلِهِ ﷺ {مَنْ حَلَفَ بِطَلَاقٍ أَوْ عَتَاقٍ** ځکه د نبی کريم ﷺ قول دې. چه کوم کس د طلاق يا عتاق قسم اوخوړلو

(1) القول الراجح هو قول محمد رحمه الله كذا في ردالمحتار (۵۵۱۰/۲) والبحر (۳۶/۴) ومجمع الأنهر (۴۲۵/۱) نقلاً عن القول الراجح

(2)...



**وَقَالَ: إِنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالَى مُتَّصِلًا بِهِ** او ددې سره ئې متصل انشاءالله تعالی اووئيل. **فَلَا حِنْثَ عَلَيْهِ**(1) نو په ده باندې حانث کيدل نشته

تشريح:- ①دليل دا دې. چه نبی ﷺ فرمانيلی دی. کوم کس چې په طلاق سره قسم اوخوړلو. اويا په آزادولو کې. او بيا ئې ورپسې دستی اووئيل. انشاء الله نودې نه حانثيږي. يعنی دده قسم نه ماتيږي. چه طلاق يا عتاق واقع شی.

**وَلِأَنَّهُ أَتَى بِصُورَةِ الشَّرْطِ** او ځکه چې راتګ ئې اوکړو په صورت د شرط سره **فَيَكُونُ تَعْلِيقًا مِنْ هٰذَا الْوَجْهِ** نو په دې اعتبارسره به دا ( کلام) تعليق وی **وَأَنَّهُ إِعْدَامٌ قَبْلَ الشَّرْطِ** اودا د شرط نه وړاندې معدوم کول دی. **وَالشَّرْطُ لَا يُعْلَمُ هٰهُنَا** او دلته کې شرط معلوم نه دې **فَيَكُونُ إِعْدَامًا مِنَ الْأَصْلِ** نو( دا به) د ابتداء نه ( جزاء) معدوم کول وی **وَلِهٰذَا يُشْتَرَطُ أَنْ يَكُونَ مُتَّصِلًا بِهِ بِمَنْزِلَةِ سَائِرِ الشُّرُوطِ** او هم په دې وجه شرط اولګولې شو. چه ددې سره متصل وی. په منزله د ټولو شرطونو

حل اللغة* ① اعدام: ختول ② سائر: ټول]

تشريح:- دوهم دليل عقلی دا دې. چه حالف دا کلام دشرط په صورت کې راوړې دې. نوپه دې اعتبار سره دا کلام تعليق دې. اوتعليق د شرط نه وړاندې معدوم کول وی. اودلته شرط يعنی د الله تعالی مشيت نه دې معلوم. نوځکه دشروع نه جزاء معدومه شوه. اوچونکه دا کلام صورة تعليق دې. نوځکه ئې دا شرط اولګولو. چه متصل واقع وی. لکه څنګه چې د ټولوشرطونوحکم دې.

**وَلَوْ سَكَتَ ثَبَتَ حُكْمُ الْكَلَامِ الْأَوَّلِ** اوکه خاموش شو. نود اول کلام حکم به ثابتيږي **فَيَكُونُ الْاِسْتِثْنَاءُ أَوْ ذِكْرُ الشَّرْطِ بَعْدَهُ رُجُوعًا عَنِ الْأَوَّلِ** نو ددې نه روسته استثناء يا شرط ذکر کول به د کلام اول نه رجوع وی **قَالَ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالَى عَنْهُ** ( مصنف رحمه الله) فرمائی **وَكَذَا إِذَا مَاتَتْ قَبْلَ قَوْلِهِ إِنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالَى** اوهم دغه ډول کله چې مړه شی. دده د قول، انشاء الله تعالی ، نه وړاندې **لِأَنَّ بِالْاِسْتِثْنَاءِ خَرَجَ الْكَلَامُ مِنْ أَنْ يَكُونَ إِيجَابًا** ځکه چې د استثناء په وجه کلام د ايجاب کيدلو نه اووتلو

تشريح:-اوکه خاوند [أنت طالق] اووئيل. اوچپ شو. ددې نه روسته ئې بيا [انشاءالله] اووئيل. نوپه دې صورت کې به داول کلام حکم يعنی واقع کيدل د طلاق موجوديږي. ځکه چې د جمهورو په نيزاستثناء منفصل صحيح نه ده. ② اودامام ابويوسف رحمه الله په نيزشرط (انشاءالله) ذکرد [أنت طالق] نه روسته داول کلام نه رجوع ده. حالانکه خاوند ته د رجوع کولواختيارنشته.

اودا داسې دی. لکه چې ښځه د خاوند دلفظ انشاءالله وئيلو نه وړاندې مړه شی. نوطلاق نه واقع کيږي. دليل دا دې. چه د انشاءالله وئيلود امله خبره د ايجاب نه اووتله. نوچه ايجاب باطل شو. حکم به هم باطليږي

**وَالْمَوْتُ يُنَافِي الْمُوجِبَ دُونَ الْمُبْطِلِ**، او مرګ د موجب منافي دې. د مبطل ( منافی ) نه دې **بِخِلَافِ مَا إِذَا مَاتَ الزَّوْجُ** په خلاف د هغه صورت کله چې د خاوند انتقال اوشی **لِأَنَّهُ لَمْ يَتَّصِلْ بِهِ الْاِسْتِثْنَاءُ** ځکه چې ددې سره استثناء متصل نه ده.

حل اللغة* ① الموجب: واجبونکې ② مبطل: باطلونکې ]

تشريح:- دا عبارت ديوسوال ځواب دې. سوال دا دې. چه ايجاب يعنی [أنت طالق] د ښځې په ژوند کې واقع

(2) غربه الزيلعی رحمه الله بهذا اللفظ ثم نقل عن أبن عمر رضي الله عنهما أن رسول الله ﷺ قال من حلف على يمين فقال إن شاءالله فلا حنث عليه

شو.اواستثناء ددي نه روسته موجود شوه.نودعدم محل د املـه استثناء باطله شوه.اوچه استثناء باطله شوه.نوایجاب صحیح شو.نوپکارده چې طلاق واقع شي.

ﷺخواب موګ د موجب منافي دي خومبطل نه دي.نوکه د [أنـت طـالق] ونیلونه وړاندې وړاندې بنځه مړه شوه.نوایجاب به باطل شي .اوموجب یعني استثناء یا شرط په مرګ سره نه باطلیږي .خکه چې مرګ هم مبطل دي.اواستثناء هم مبطله ده.اود مبطل اومبطل په مینځ کي څه منافات نه وي .ددې په خلاف که [أنـت طالق] ونیلونه روسته اودانشاء الله ونیلونه وړاندې خاوند مړ شي .نوطلاق به واقع کیږي .خکه چې په دي صورت کي د [أنت طالق] سره استثناء متصله نشته.

### د [أنت طالق ثلاثاً إلا واحدة] حکم

وَإِنْ قَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ ثَلَاثًا إِلَّا وَاحِدَةً، اوکه وې ونیل.ته په دریو طلاقو طالقه نې.مګر په یو طَلُقَتْ ثِنْتَيْنِ نو په دوې [دوه] طلاقو سره به طالقه وی وَإِنْ قَالَ أَنْتِ طَالِقٌ ثَلَاثًا إِلَّا ثِنْتَيْنِ اوکه وې ونیل. ته په دریو طلاقو طالقه نې.سوا د دوو نه طَلُقَتْ وَاحِدَةً نو په یو سره به مطلقه وی

تشریح:- صورت دمسئلې دا دې.که یوکس خپلې بنځې ته اوونیل.[أنت طالق ثلاثاً إلا واحدة] نوپه دې صورت کي دوې [دوه] طلاقه واقع کیږي .اوکه ونې ونیل.چه [أنت طالق ثلاثاً إلا ثـنتين] نوپه دې صورت کي یوطلاق واقع کیږي.

ﷺمصنفﷺ دوې [دوه] مثالونه ذکرکړل،دې اړخه داشارې کاوه لپاره چې استثناء د قلیل او کثیر دواړو جائز ده. اګرچه امام فراء نحوی ددې اجازت نه دې ورکړې.

وَالْأَصْلُ أَنَّ الِاسْتِثْنَاءَ تَكَلُّمٌ بِالْحَاصِلِ بَعْدَ الثُّنْيَا،او قاعده داده.چه استثناء د هغه مقدار تکلم کول دی.کوم چې د استثناء نه روسته حاصل شو هُوَ الصَّحِيحُ هم دا صحیح ده وَمَعْنَاهُ أَنَّهُ تَكَلَّمَ بِالْمُسْتَثْنَى مِنْهُ ددې معنی داده.چه په پاته مستثنی منه سره نې کلام اوکړو إِذْ لَا فَرْقَ بَيْنَ قَوْلِ الْقَائِلِ لِفُلَانٍ عَلَيَّ دِرْهَمٌ خکه چې هیڅ توپیر نشته.ددې دواړو قولو په منځ کي.چه د فلانی لپاره په ما باندې یو درهم دی وَبَيْنَ قَوْلِهِ عَشَرَةٌ إِلَّا تِسْعَةً.( او په منځ ددې قول چه) او لس درهمه دی سوا د نهو نه فَيَصِحُّ اسْتِثْنَاءُ الْبَعْضِ مِنَ الْجُمْلَةِ نود کُل نه د بعض استثناء کول صحیح دی لِأَنَّهُ يَبْقَى التَّكَلُّمُ بِالْبَعْضِ بَعْدَهُ خکه چې د استثناء نه روسته به د بعض تکلم پاته پاتې وی وَلَا يَصِحُّ اسْتِثْنَاءُ الْكُلِّ مِنَ الْكُلِّ اود کل استثناء د کل نه صحیح نه دې لِأَنَّهُ لَا يَبْقَى بَعْدَهُ شَيْءٌ لِيَصِيرَ مُتَكَلِّمًا بِهِ خکه چې ددې استثناء نه روسته هیڅ پاته پاتې نشو.چه په هغې سره تکلم کونکې شی وَصَارِفًا لِلَّفْظِ إِلَيْهِ او لفظ د هغې اړخ ته ګرخونکې (شی ). وَإِنَّمَا يَصِحُّ الِاسْتِثْنَاءُ إِذَا كَانَ مَوْصُولًا بِهِ كَمَا ذَكَرْنَا مِنْ قَبْلُ او استثناء به صحیح وی .کله چې اصل کلام سره متصل وی .لکه څنګه چې موږ وړاندې ذکرکړی دی وَإِذَا ثَبَتَ هَذَا او هرکله چې دا ثابته شوه فَفِي الْفَصْلِ الْأَوَّلِ الْمُسْتَثْنَى مِنْهُ ثِنْتَانِ فَيَقَعَانِ نو په ړومبۍ مسئله کي مستثنی منه دوې [دوه] دی .نو واقع به وی وَفِي الثَّانِي وَاحِدَةٌ، فَتَقَعُ وَاحِدَةٌ او په دویمه مسئله کي ( مستثنی منه) یو دې.نو هغه یو به واقع وی

تشریح:-داستثناء اصل دا دې.چه داستثناء نه روسته کوم مقدارپاته پاتې شی .دهغې تکلم کول استثناء ده.حاصل دا چې د مستثنی منه کوم مقدارچه پاته پاتې شی .په هغې باندې تکلم کولوته استثناء وائی .نود یوکس دا وینا چې دفلانی په ما باندې یوه روپۍ ده.اودا چې دفلانی په ما باندې لس روپۍ سوا د نهو نه دی .په دې دواړو قولونوکي څه توپیر نشته.نوحاصل دا چې د بعضې دکل نه استثناء کول جائزدی .اودکل د کل نه استثناء کول جائز نه دی .خکه چې دکل نه د کل استثناء کولونه روسته پاته څه نه پاتې کیږی .چه په هغې باندې تکلم کونکې شی .اوداستثناء د صحت لپاره دا هم ضروری دی .چه استثناء د اصل کلام سره



متصله وی.

ﷺبهرحال هرکله چې دا اصول معلوم شو.نوپه اولنی صورت کي د مستثنی منه نه روسته پاته مانده دوې [دوه] دی .نو دوې [دوه] طلاقه به واقع کیږي .اوپه دوهم صورت کي د مستثنی منه نه روسته پاته یو دې.نویوطلاق به واقع کیږي.

وَلَوْ قَالَ: إِلَّا ثَلَاثًا،اوکه وې ونیل،الا ثلاثاً يَقَعُ الثَّلَاثُ نو درې به واقع کیږي لِأَنَّهُ اسْتِثْنَاءُ الْكُلِّ مِنَ الْكُلِّ خکه چې دا د کل استثناء د کل نه ده فَلَمْ يَصِحَّ الِاسْتِثْنَاءُ نو استثناء صحیح نشوه وَاللَّهُ تَعَالَى أَعْلَمُ بِالصَّوَابِ او الله زیات خبر دې.

تشریح:-اوکه خاوند اوونیل.[أنت طالق ثلاثاً إلا ثلاثاً] نوپه دې صورت کي به استثناء باطله وی .اودرې طلاقه به واقع کیږي .خکه چې دا دکل د کل نه استثناء ده.کومه چې صحیح نه ده.خکه چې داستثناء کولونه روسته څه پاتې نشو.چه په هغې سره تکلم اوکړې شی .[والله سبحانه وتعالى أعلم بالصواب]

## باب طلاق المریض

(دا) باب د مریض د طلاق ( په بیان کښې ) دې.

تشریح:- په مخکنوبابونوکي مصنفﷺ د صحیح کس طلاق سره دتولوقسمونوبیان وکړلو.اوس په دې باب کي دمریض دطلاق د احکاموبیان کوی .چونکه مرض عارض دې.اوصحت اصل دې.اواصل مقدم وی په عارض باندې.نوخکه نې په ترتیب کي دتندرست د طلاق احکام اول بیان کړل.اود مریض د طلاق احکام نې وروسي.

### په مرض الموت کي د طلاق ورکولوحکم

وَإِذَا طَلَّقَ الرَّجُلُ امْرَأَتَهُ فِي مَرَضِ مَوْتِهِ طَلَاقًا بَائِنًا او کله چې طلاق ورکړو.سړی خپلې بنځې ته په مرض د وفات خپل کي ،طلاق بائن فَمَاتَ وَهِيَ فِي الْعِدَّةِ بیا مړشو.په داسې حال کي چې دا( بنځه دده) په عدت کي ده وَرِثَتْهُ، نو( بنځه به) وارثه وی وَإِنْ مَاتَ بَعْدَ انْقِضَاءِ الْعِدَّةِ اوکه دې مړشو.روسته د تیریدلو د عدت ( دبنځې نه) فَلَا مِيرَاثَ لَهَا نوددې ( بنځې) لپاره به میراث نه وی

تشریح:-صورت دمسئلې دا دې.چه خاوند خپلې بنځې ته په مرض الموت کي طلاق بائن ورکړی بغیر د بنځې د رضامندۍ نه.بیا دا خاوند مړشی .حالانکه دده دا بنځه لاپه عدت کي وی .اودمیراث مستحقه وی .نودا بنځه به دخپل خاوند نه میراث اوړی .

په دې مسئله کي څوقیودات دی .دا اوګورئ.① دا چې مرګ دعدت سره مقید دی.خکه که د عدت پوره کیدو نه روسته مړ شوې وی .نوپه دې صورت کي به هم وارثه نه وی .اګرچه امام مالکﷺ فرمائی .چه په دې صورت کي به هم میراث اوړی .② دا چې د میراث داستحقاق قید نې اولګولو.خکه که دا بنځه کتابیه وی .یاوینځه وی .نوپه دې صورت کي به هم میراث نه اوړی .③ دا چې طلاق نې دبنځې دعدم رضا پورې مقید کړلو.خکه که طلاق نې ددې په رضا سره ورکړې وی .نوبیا هم دا دمیراث مستحقه نه ده.④ دا چې طلاق بائن نې په مرض الموت باندې مقید کړلو.خکه که دې سړی په حالت دمرض کي طلاق ورکړلو.اوبیا روغ شو.اوبیا مړ شو.نوپه دې صورت کي بنځه دمیراث مستحقه نه ده (۵) داچه طلاق بائن نې ورکړې وی .خکه که طلاق رجعی نې ورتـه ورکړې وی .نودا بنځه د نکاح د املـه دمیراث حقداره نـه ده دفرارد املـه .خکه چې په طلاق رجعی کښې دعدت په مهال کي نکاح من كل وجوه پاته وی .

ⓐصاحب دعنايه فرمائي .چه د خاوند په خپل مرض الوفات کي طلاق ورکول، دې ته طلاق فار وائي . او د فار حکم لکه څنګه چې دسړي د اړخه ثابتيږي .دغه ډول دښځې داړخه هم ثابتيږي .مثلاً چې ښځه په خپل مرض الموت کي مرتده شي .والعياذبالله نو خاوند به ميراث اوړي .

ⓑ① حاصل دا چې داحنافو ﷭ په نيزکه خاوند په زمانه دعدت کي مړ شي .نوښځه به وارثه وي .اوکه د عدت تيريدو نه روسته مړ شي .نوښځه به وارثه نه وي .

وَقَالَ الشَّافِعِي رَحِمَهُ اللّٰهُ: لَا تَرِثُ فِي الْوَجْهَيْنِ او امام شافعي ﷬ فرمائي .چه دابه په دواړو صورتونو کي وارثه نه وي لِأَنَّ الزَّوْجِيَّةَ قَدْ بَطَلَتْ بِهٰذَا الْعَارِضِ خکه چې بي بي کيدل ددې عـارض په وجه باطل شو وَهِيَ السَّبَبُ حالانکه بي بي کيدل ( د ميراث) سبب وو وَلِهٰذَا لَا يَرِثُهَا إِذَا مَاتَتْ اوهم په دې وجه که ښځه مړه شوه.نو سړی ددې وارث نشي کيدې

تشريح:- دامام شافعي ﷬ په نيزبه په دواړوصورتونوکي وارثه وي .که مرګ ئې په عدت کي وی .اوکه د عدت تيريدو نه روسته وی . دليل دا دې.چه د زوجينوپه مينځ کي د وراثت سبب د زوجيت رشته ده.اود طلاق بائن واقع کيدو په وجه د زوجيت رشته باطله شوه.نود وراثت حکم د سبب نه بغير نه ثابتيږی .هم دا وجه ده.که په دې حال کي ښځه مړه شي .نو خاوند به وارث نه وی .

وَلَنَا أَنَّ الزَّوْجِيَّةَ سَبَبُ إِرْثِهَا فِي مَرَضِ مَوْتِهِ او زموږ دليل دادې.چه بي بي کيدل، د خاوند په مرض وفات کي د ښځې د وارث جوړيدلو سبب دې وَالزَّوْجُ قَصَدَ إِبْطَالَهُ او خاوند ددې د باطلولو اراده کړې ده فَيُرَدُّ عَلَيْهِ قَصْدُهُ بِتَأْخِيرِ عَمَلِهِ إِلَى زَمَانِ انْقِضَاءِ الْعِدَّةِ دَفْعًا لِلضَّرَرِ عَنْهَا نود خاوند ( دا) اراده به هم په ده باندې واپس کولې شی .د عدت موده تيريدلو دپاره، په تاخير دعمل دده سره، چه دښځې نه ضررلرې شي

تشريح:- زموږ سره دليل نقلي اوعقلي دواړه شته.خوصاحب دهدايه ﷬ دليل نقلي نه دې ذکرکړې.د دليل نقلي لنډيز دا ده.چه دفارد ښځې دميراث اوړل دصحابو ﷡ په اجماع سره ثابت دی .تفصيل دا دې.چه حضرت عبدالرحمن بن عوف ﷜ خپلي ښځې تماضرته په خپل مرض الوفات کي طلاق بائن ورکړلو .او د عبدالرحمن به عوف وفات اوشو.حالانکه ددوی بی بی تماضربه خپل عدت کي وه.نوحضرت عثمان ﷜ تماضرد حضرت عبدالرحمن بن عوف ﷜ دميراث وارثه جوړه کړه.حالانکه دا کاردصحابو ﷡ په وجود کي شوې وو.خوهيڅ چا پرې انکاراونکړلو.نوځکه دا اجماع سکوتی شوه.دحضرت عائشي ﷞ نه روايت دې.

﴿إن إمراة الفار ترث﴾ بيشکه د فارښځه به ميراث اوړي .ددې نه علاوه دحضرت عمر، عثمان، علي ، ابن مسعود ﷡ نه هم دا مروی دی .اودهيڅ يوصحابي نه ددې خلاف منقول نه دې.نواجماع سکوتي متحقق شوه.

ⓐاودا کوم چې د حضرت عبدالله بن زبير ﷠ نه روايت کولې شي .چه که معامله ماته راغلې وه.نومابه تماضرد ميراث حقداره نه وه جوړه کړې.څه نقصان نه رسوی .ځکه چې په کوم وخت کي چې اجماع منعقد کيدله .نوپه هغه وخت کي حضرت عبدالله بن زبير ﷠ ماشوم وو.اودا خبره د روستووخت ده.اوروستنې اختلاف د وړاندينې اجماع سره معارض نشي کيدې.

ⓑدصاحب هدايه ﷬ د دليل عقلي لنډيز دا ده.چه په مرض الوفات کي دښځې ښځه توب د ميراث اوړلوسبب دې.ځکه چې د خاوند په وفات سره د ښځې حق د هغه په ميراث پورې متعلق کيږی .نوچه په دې حالت کي خاوند ښځې ته طلاق ورکړی .نودې دښځې دحق وراثت باطلول غواړی .نودده دا غلطه اراده به هم ده ته واپس کولې شی .په دې طريقه چې د طلاق عمل به دعدت دتيريدو زماني پورې اوږد کړې شی .چه ښځه دميراث دمحرومتيا نه بچ شي .

وَقَدْ أَمْكَنَ او( داسې تاخير) ممکن هم دې لِأَنَّ النِّكَاحَ فِي الْعِدَّةِ يَبْقٰى فِي حَقِّ بَعْضِ الْآثَارِ ځکه چې په عدت کي د بعضو آثارو په حق کي نکاح پاته پاتې کيږی فَجَازَ أَنْ يَبْقٰى فِي حَقِّ إِرْثِهَا عَنْهُ، بِخِلَافِ مَا بَعْدَ الْاِنْقِضَاءِ نو



ممکن ده.چه خاوند سره د ښځې د ميراث په حق کي هم نکاح پاته پاتې وی .په خلاف د انقضاء عدت نه روسته لِأَنَّهُ لَا إِمْكَانَ ځکه چې امکان نشته

تشريح:- په دې عبارت سره ديوسوال ځواب ورکوی .سوال دا دې.که د طلاق عمل روستوکول د ښځې نه د ضرر لرې کاوه لپاره وی .نوپکارده چې په دې حکم کي مدخول بها اوغيرمدخول بها د عدت پوره کيدونه وړاندې اود عدت پوره کيدونه روسته برابروو.حالانکه داسې نه ده.ځکه که غيرمدخول بهاته په مرض کي طلاق ورکړی . او خاوند مړشي .نودا مدخول بها به هم ميراث نه اوړی .اودغه ډول که دعدت تيريدونه روسته هم مړ شي . نو غير مدخول بها هم د ميراث مستحقه نه ده.

ⓐبيشکه دطلاق عمل روستوکول د ښځې نه د ضرر لرې کاوه لپاره دی .خود طلاق عمل به ترهغه هومره روستوکولې شي .څومره چې ممکن وی .اوچونکه د عدت د وخته پورې د طلاق عمل روستوکول ممکن دی .ځکه چې په عدت کي نکاح من وجه پاته وی .نوځکه دعدت ختميدوپورې دطلاق عمل روستوکولې شي .اودعدت ختميدونه روسته نکاح بيخي نه پاتې کيږی .نه من وجه اونه من کل وجه ،نومعلومه شوه.چه د عدت نه روستوهم د طلاق عمل روستوکول ممکن نه دی .نوځکه د عدت نه روستو پورې د طلاق عمل نشي روستو کولې.اوچونکه د غيرمدخول بها په حق کي عدت واجب نه دې.نوځکه دهغې په حق کي دطلاق عمل هم نشي روستوکولې.

وَالزَّوْجِيَّةُ فِي هٰذِهِ الْحَالَةِ لَيْسَتْ بِسَبَبٍ لِإِرْثِهِ عَنْهَا او بي بي کيدل په دې حالت کي د خاوند وارث کيدلو سبب نه دې فَتَبْطُلُ فِي حَقِّهِ خُصُوصًا إِذَا رَضِيَ بِهِ نود خاوند په حق کي ( سبب) باطل شو.بالخصوص چې کله خاوند په دې باندې راضي شوې وی .

تشريح:- په دې عبارت سره دامام شافعي ﷬ دقياس ﴿ولهذا لايرثها إذا ماتت﴾ ځواب دی.دځواب حاصل دا دې. چې دښځې د خاوند نه د ميراث اوړل ددې املـه نه دی .چه دې په مرض الوفات کي د ښځې خاوند دې.ځکه چې د خاوند په مرض الوفات کي دښځې حق دسړي په مال پورې متعلق کيږی . دسړي حق د ښځې په مال پورې نه متعلق کيږی .نودسړی په حق کي به سبب دميراث باطل وی .بيا خاص کرېنه هغه وخت کي چې کله ورته خاوند طلاق ورکړی .اود ميراث د سبب په باطلولوراضي هم وی .

## دښځې په وينا درې طلاقه ورکول

وَإِنْ طَلَّقَهَا ثَلَاثًا بِأَمْرِهَا او که ( خاوند) د ښځې په وئيلو دې ته درې طلاقه ورکړل أَوْ قَالَ لَهَا اخْتَارِي يائې خپلې ښځې ته اووئيل.ته اختيار کړه فَاخْتَارَتْ نَفْسَهَا نو ښځې خپل نفس اختيار کړو أَوِ اخْتَلَعَتْ مِنْهُ يا ښځې خاوند سره خلع اوکړله ثُمَّ مَاتَ وَهِيَ فِي الْعِدَّةِ خاوند مړشو.حالانکه دا ښځه په عدت کي ده لَمْ تَرِثْهُ نودا به د خاوند وارثه نه وی

تشريح:- په دې عبارت کي درې صورتونه دی .① ښځې دخپل خاوندنه د درې طلاقومطالبه اوکړله.او خاوند ورته په مرض الوفات کي درې طلاقـه ورکړل② خاوند په مرض الوفات کي خپلې ښځې ته دطلاق اختياروکړلو.اوهغې ځان مختاره کړلو.③ ښځې په مرض الوفات کي دخاوندسره خلع اوکړله.ددې درې واړوصورتونوحکم دا دې.که خاوندئې مړشو.اودا ښځه په عدت کي وه.نودا دخپل خاوندنه ميراث نشي اوړلې.

لِأَنَّهَا رَضِيَتْ بِإِبْطَالِ حَقِّهَا ځکه چې ښځه ( پخپله) د خپل ميراث حق باطلولوباندې راضي شوه وَالتَّأْخِيرُ لِحَقِّهَا حالانکه مؤخرکول ددې د حق په وجه وو

تشريح:- دليل دا دې.چه په دې درې واړوصوتونوکي ښځه دخپل حق په باطلولوباندې راځی ده.په اول صورت

کي خوخکه چې دې په خپله دطلاق مطالبه کړې ده.اوپه دوهم صورت کي خکه چې دې په خپله خوښه خان مختاره کړې دې.اود بیلتون ارتکاب ئې کړې دې.اوپه دریم صورت کي خکه چې دې په خپله په خان باندې دخلعې په ذریعه مال لازم کړې دې.اوفرقت ئې غوره کړې دې.اودا دلیل درضا دې.

(۴)اودطلاق اثر روستوکول خودښځې دحق د امله وو.خوهرکله چې ښځه په خپله د خپل حق په باطلولو راضي وي . نوپه نوروباندې هم ددې دحق ساتنه ضروري نه دې.

وَإِنْ قَالَتْ طَلِّقْنِي لِلرَّجْعَةِ اوکه ښځې اووئیل.ما ته طلاق رجعی راکړه فَطَلَّقَهَا ثَلَاثًا نو خاوند دې ته درې طلاقه ورکړل وَرِثَتْهُ نو ښځه به دده وارثه وي

تشريح:- اوکه ښځې د خاوند نه طلاق رجعی اوغوښتلو.او خاوند ورته په مرض الوفات کي درې طلاقه ورکړل. نو دا ښځه به میراث اوړي

لِأَنَّ الطَّلَاقَ الرَّجْعِيَّ لَا يُزِيلُ النِّكَاحَ خکه چې طلاق رجعی نکاح نه زائل کوي فَلَمْ تَكُنْ بِسُؤَالِهَا رَاضِيَةً بِبُطْلَانِ حَقِّهَا نودا ښځه به د طلاق رجعي غوښتلو په وجه دخپل حق په باطلولو باندې راضي کیدونکې نه وي .

تشريح:-.دلیل دا دې.چه طلاق رجعی نکاح نه زائله کوي .نودا نشي وئیلې.چه دې ښځې د طلاق رجعی طلب اوکړلو.نودخپل حق په باطلولوراضی ده

## ښځي ته په مرض الوفات کي دصحت د ورخود طلاق خبر ورکول

وَإِنْ قَالَ لَهَا فِي مَرَضِ مَوْتِهِ او که خاوند خپلې ښځې ته پخپل مرض وفات کي اووئیل كُنْتُ طَلَّقْتُكِ ثَلَاثًا فِي صِحَّتِي وَانْقَضَتْ عِدَّتُكِ ما تاته پخپل صحت کي درې طلاقه درکړل.ستا عدت هم تیر شوې دې فَصَدَّقَتْهُ نوښځې دده ( دقول) تصدیق اوکړو ثُمَّ أَقَرَّ لَهَا بِدَيْنٍ بیا ( خاوند) ددې ښځې لپاره ( پخپله) ذمه د پور اقرار اوکړو أَوْ أَوْصَى لَهَا بِوَصِيَّةٍ یا خاوند ددې لپاره وصیت اوکړو فَلَهَا الْأَقَلُّ مِنْ ذَلِكَ وَمِنَ الْمِيرَاثِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ[1] نود امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز به ددې ښځې لپاره په دې اقرار یا وصیت سره او ددې د میراث په برخه کي چې کم وي .هغه به وي وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ رَحِمَهُمَا اللَّهُ: يَجُوزُ إِقْرَارُهُ وَوَصِيَّتُهُ او امام ابویوسف او امام محمد رحمهما الله فرمائی .چه د مریض اقرار او وصیت جائز دې وَإِنْ طَلَّقَهَا ثَلَاثًا فِي مَرَضِهِ بِأَمْرِهَا او که خاوند په مرض وفات کي ښځې ته ددې په وئیلو درې طلاقه ورکړل .. ثُمَّ أَقَرَّ لَهَا بِدَيْنٍ أَوْ أَوْصَى لَهَا بِوَصِيَّةٍ بیائې ددې ښځې لپاره د څه قرضې اقرار اوکړو.یا ئې ددې لپاره څه وصیت اوکړو فَلَهَا الْأَقَلُّ مِنْ ذَلِكَ وَمِنَ الْمِيرَاثِ فِي قَوْلِهِمْ جَمِيعًا نو بالاتفاق ( دا حکم دې چه) دښځې لپاره د قرضې اقرار یا وصیت نه اودمیراث دحصې نه چې کم وي .هغه به وي إِلَّا عَلَى قَوْلِ زُفَرَ رَحِمَهُ اللَّهُ خود امام زفر رحمه الله قول باندې فَإِنَّ لَهَا جَمِيعَ مَا أَوْصَى وَمَا أَقَرَّ بِهِ خکه ( چې د امام زفر رحمه الله په نیز) چې کوم وصیت اوکړو اوکوم اقرار ئې اوکړو.هغه به پوره ملاویږي لِأَنَّ الْمِيرَاثَ لَمَّا بَطَلَ بِسُؤَالِهَا خکه چې هرکله د ښځې د اړخه د طلاق غوښتلو په وجه ددې میراث باطل شو زَالَ الْمَانِعُ مِنْ صِحَّةِ الْإِقْرَارِ وَالْوَصِيَّةِ نود صحت اقرار اود وصیت مانع زائل شو

تشريح:- په دې عبارت کي دوې [دوه] مسئله زیربحث دی .① اوله مسئله دا ده.چه خاوندښځې ته اووئیل.چه ماتاته په په زمانه دصحت کي طلاق درکړي وو.اوستاعدت هم تیرشوي وو.اوښځې ئې تصدیق هم اوکړلو.اوبیا خاوند دښځې لپاره د پور اقراراوکړلو.یا ئې د څه مال وصیت اوکړلو.نودامام ابوحنیفه رحمه الله په نیزچه دخومره پور اقرارئې کړې وي .یائې وصیت اوکړلو.نودې ته به ددغه ( پور یاوصیت) اودمیراث نه کم

[1] القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في الدرالمختار(۵۷۰\۲) والبحر(٤۵\٤) والهندية (٤٦٤\۱) نقلاً عن القول الراجح (۳۳٦\۱)_



ورکولې شي .یعنی که میراث کم وي .نومیراث به ورکولې شي .اوکه په کوم پور ئې اقرارکړې وي .یا د کوم مال چې ئې وصیت کړې وي .هغه کم وي .هغه به ورکولې شي .اودامام زفر رحمه الله په نیزچه دکوم مال د پور اقرار ئې کړې وي .یائې وصیت کړې وي .که هغه د میراث نه کم وي .اوکه زیات.هم هغه به ورکولې شي .اودصاحبینو رحمهما الله په نیزپه اوله مسئله کي هغه حکم دې.کوم چې دامام زفر رحمه الله په نیز دې.اوپه دویمه مسئله کي هغه حکم دې.کوم چې د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیزدې.

(۴)دامام زفر رحمه الله دلیل دا دې.چه ددې ښځې لپاره داقراردصحت اووصیت لپاره دا خبره مانع وه.خوچه په اوله مسئله کي دې د خاوند د قول تصدیق اوکړلو.اوپه دویمه مسئله کي ئې د طلاق سوال اوکړلو.نوددې امله ددې میراث باطل شو.نوکوم څیزچه د اقرارد صحت اووصیت نه مانع وو.هغه زائل شو.اوهرکله چې مانع زائل شو.نودښځې لپاره د پور اقرارکول اووصیت کول دواړه صحیح شول.نوخکه به د خاوندد مرګ نه روسته ښځه هم دهغه مقدارحقداره وي .دکوم چې ددې لپاره اقرارشوې دې.یا ئې ورله وصیت شوې دې.که هغه د میراث دحصې نه کمه وي اوکه زیاته.

وَجْهُ قَوْلِهِمَا فِي الْمَسْأَلَةِ الْأُولَى په رومبۍ مسئله کي د صاحبینو رحمهما الله د قول وجه داده أَنَّهُمَا لَمَّا تَصَادَقَا عَلَى الطَّلَاقِ وَانْقِضَاءِ الْعِدَّةِ چې هرکله خاوند او ښځې په طلاق او عدت تیریدلو باندې اتفاق اوکړو صَارَتْ أَجْنَبِيَّةً عَنْهُ حَتَّى جَازَ لَهُ أَنْ يَتَزَوَّجَ أُخْتَهَا نودا ښځه دده نه اجنبیه شوه.تردې چې خاوند لپاره جائز شو.چه ددې د خور سره (اوس) نکاح اوکړي فَانْعَدَمَتِ التُّهْمَةُ نو تهمت معدوم شو أَلَا تَرَى أَنَّهُ تُقْبَلُ شَهَادَتُهُ لَهَا آیا نه ګورئ.چه د سړي ګواهي ددې ښځې په حق کي قبلولې شي وَيَجُوزُ وَضْعُ الزَّكَاةِ فِيهَا او( سړی له د خپل مال) زکاة دې ښځې ورکول جائز دی

تشريح:په لومړنۍ مسئله کي دصاحبینو رحمهما الله دلیل دا دې.چه هرکله ښځې اوخاوندطلاق د وقوع اود عدت تیریدواقرار اوکړلو.نوداښځه پردئ شوه.وارثه پاتې نشوه.هم دا وجه ده.که خاوند اوس په دغه وخت کي د دې ښځې د خور سره نکاح کول غواړي .نودا صحیح ده.نوپه وارثانوکي یوته په بل باندې دترجیح ورکولوتهمت لرې شو.تاسوسوچ اوکړئ.چه دسړي ددې ښځې لپاره ګواهي ورکول جائزدی .(حالانکه دخاوندد ښځې لپاره ګواهي ورکول صحیح نه دی )اود دغه ښځې ته د زکاة مال ورکول جائزدی .(حالانکه خاوند ښځې ته زکاة نشي ورکولې)نود سړي ددې ښځې لپاره اقراربه داسې صحیح وي .لکه څنګه چې د نوروپردوکسانو لپاره صحیح وي .

بِخِلَافِ الْمَسْأَلَةِ الثَّانِيَةِ .په خلاف د دویمې مسئلې لِأَنَّ الْعِدَّةَ بَاقِيَةٌ وَهِيَ سَبَبُ التُّهْمَةِ،خکه چې عدت پاته دې.او هم دا د تهمت سبب وو وَالْحُكْمُ يُدَارُ عَلَى دَلِيلِ التُّهْمَةِ اود حکم مدار دتهمت په دلیل باندې دې وَلِهَذَا يُدَارُ عَلَى النِّكَاحِ وَالْقَرَابَةِ اوهم په دې وجه په نکاح او قرابت باندې دحکم مدار دې وَلَا عِدَّةَ فِي الْمَسْأَلَةِ الْأُولَى او په رومبۍ مسئله کي عدت ( باقي ) نه پاتې کیږي

تشريح:- په خلاف ددې مسئلې څکه چې په دې کي دتهمت اثردې.اودتهمت اثرخکه دې.چه لاتراوسه عدت پاته دې.اوهم عدت د تهمت سبب دې.تفصیل دا دې.چه په وارثانوکي یوته په بل باندې د ترجیح ورکاوه تهمت یوباطنی څیزدې.اوچونکه په باطنی څیزپه حقیقت باندې خبریدل ناممکن دی .نوخکه دحکم دارومدار دیوڅیزپه باطن باندې نه وي .بلکه دهغې په دلیل باندې وي .اودلته دتهمت دلیل دهغې عدت دې.نوثابته شوه.چه عدت موجود وي .نوتهمت به موجود وي .اودتهمت د امله اقراراو وصیت جائزنه دې.نودلته هم چې عدت موجود وي .نواقراراووصیت جائزنه دې.

هم ددې امله په نکاح اوقرابت باندې د حکم مداردې.هم دا وجه ده.چه دتهمت په وجه په ښځه خاوند کي دیوګواهي د بل لپاره جائزنه ده.اونه په اولاد په رشته دارئ کي یودبل لپاره ګواهي کولې شي .اوپه لومړنۍ

مسئله کي دعدت په تیریدوباندې چې د زوجینواتفاق راغلو.نوعدت پاته پاتې نشو. نو د تهمت دلیل هم موجود نشو . نوځکه مونږوایو.چه په دې مسئله کي دښځې لپاره د خاوند اقرار او وصیت جائزدي.

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ فِي الْمَسْأَلَتَيْنِ أَنَّ التُّهْمَةَ قَائِمَةٌ اود امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل په دواړو مسئلو کي دادې چه تهمت موجود دې لِأَنَّ الْمَرْأَةَ قَدْ تَخْتَارُ الطَّلَاقَ لِيَنْفَتِحَ بَابُ الْإِقْرَارِ وَالْوَصِيَّةِ عَلَيْهَا ځکه چې ښځه کله په دې غرض طلاق اختیار کړی .چه د اقرار او وصیت دروازه په دې کولاؤ شی فَيَزِيدَ حَقُّهَا بیا ددې حق زیات شی ، وَالزَّوْجَانِ قَدْ يَتَوَاضَعَانِ عَلَى الْإِقْرَارِ بِالْفُرْقَةِ وَانْقِضَاءِ الْعِدَّةِ لِيَبَرَّهَا الزَّوْجُ بِمَالِهِ زِيَادَةً عَلَى مِيرَاثِهَا ،او خاوند او ښځه کله دواړه د فرقت اقرار او په عدت تیریدلو باندې اتفاق کوی چې خاوند په دې باندې خپل مال سره ددې د میراث په برخه باندې زیات کړی او احسان اوکړی وَهَذِهِ التُّهْمَةُ فِي الزِّيَادَةِ اودا تهمت ( صرف) په زیاتوالی کي دې فَرَدَدْنَاهَا په دې وجه موږ زیاتوالې رد کړلو وَلَا تُهْمَةَ فِي قَدْرِ الْمِيرَاثِ اود میراث په مقدار کي هیڅ تهمت نشته فَصَحَّحْنَاهُ نو موږ ( د میراث مقدار) صحیح اوساتلو

تشریح:- په دواړومسئلوکي دامام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دا دې.چه تهمت موجود دې.په دویمه مسئله کي خوبه اتفاق سره موجود دې.اوپه لومړنی مسئله کي هم تهمت موجود دې.ځکه چې ښځې بعضې وخت ددې لپاره طلاق اختیاروی .چه د وصیت وغیره دروازه پرانستې شی .نوددې حق به د اقراریا وصیت په ذریعه د میراث نه زیاته شی . لندیز دا چې خاوند ښځې ته ددې امله طلاق نه ورکړې.چه په دې سره جدائی راشی .بلکه مقصد ئې دا وو.چه په دې طریقه ښځې ته زیات مال ملاؤ شی .کوم چې ورته په میراث کي نه ملاویدلو.اوپه دې کي د نورو وارثانونقصان د نمرنه زیات ښکاره دې.نودا دلته هم تهمت دې. اودا هم احتمال شته.چه خاوندهډوطلاق ورکړې نه وی .اوزوجینو په دې باندې اتفاق کړې وی .چه طلاق هم واقع شوې دې.اوعدت هم تیرشوې دې.اوپه دې اتفاق کي د دوی غرض دا وی .چه خاوند خپلې ښځې ته د میراث نه زیات مال ورکول غواړی .اودې ښځې سره تبرع اواحسان کول غواړی .په دې طریقه چې ددې لپاره د پور اقراراوکړی .یا ورله وصیت اوکړی .حاصل دا چې دا تهمت صرف په زیادت کي دې.نوموږ زیادت رد کړلو.اودمیراث په مقدارکي څه تهمت نشته.نوځکه مونږد میراث مقدارصحیح اوګرځولو.اودا حکم مو ورکړلو.چه په اقراراو وصیت کي اودمیراث په مقدارکي چې کوم کم وی .ښځې ته به هم هغه ورکولې شی .یعنی که دمیراث مقداردافراراو وصیت نه کم وو.نودا به ورکولې شی .اوکه د مال مقداریا د وصیت د مال مقدارد میراث نه کم وی .نودا چونکه خپل حق په کملو باندې راضی وه.نوځکه به هغه ورکولې شی .

وَلَا مُوَاضَعَةَ عَادَةً فِي حَقِّ الزَّكَاةِ وَالتَّزَوُّجِ وَالشَّهَادَةِ ،او عادتاً زکاة او تزوج اد ګواهئ په حق کي اتفاق نشی کیداې فَلَا تُهْمَةَ فِي حَقِّ هَذِهِ الْأَحْكَامِ نو ددې احکامو په حق کي په تهمت ( معتبر) نه وی .

تشریح:- په دې عبارت سره د صاحبینو رحمهما الله دقول ألا ترى أنه تقبل شهادته لها جواب ورکوی .دخواب حاصل دا دې.چه دمیراث په حق کي دا اتفاق عادةً جاری دې.نوپه دې کي تهمت شته.اوپه نورواحکاموکي عادةً دا اتفاق نشته.بلکه یو ډول بیوقفتیا ده.ځکه چې دا کومه هوښیارتیاده.چه دښځې موافق ګواهی ور اوکړې شی ،یا ددې د خورسره نکاح کولودپاره،یا زکاة ور کاوه لپاره په طلاق اوعدت تیریدوباندې اتفاق کاوه دپاره .نوددې حکمونوپه حق کي به هم دا ګنړلې شی .چه د طلاق اوعدت تیریدواتفاق یقینی دې.نوثابته شوه.چه په دې احکاموکي څه تهمت نشته.

**په حالت د جهاداوپه حالت د قصاص یا رجم کیدوکي ښځې ته د درې طلاقوورکول**

... فرمائی . وَمَنْ كَانَ مَحْصُورًا اوکوم کس چې ( په قلعه کي ) محصور وی أَوْ فِي صَفِّ الْقِتَالِ یا ... په صف کي وی فَطَلَّقَ امْرَأَتَهُ ثَلَاثًا نوده خپلې ښځې ته درې طلاقه ورکړه ( بیا سړې قتل کړې



شي، لَمْ تَرِثْهُ نو ښځه به دده وارثه نه وی وَإِنْ كَانَ قَدْ بَارَزَ رَجُلًا اوکه دا سړې دیو کس مقابلې لپاره اووتلو أَوْ قُدِّمَ لِيُقْتَلَ فِي قِصَاصٍ أَوْ رَجْمٍ یا پیش کړې شو.چه په قصاص یا رجم کي قتل کړې شی فَمَاتَ فِي ذَلِكَ الْوَجْهِ أَوْ قُتِلَ نوکه دې په دې وجه مړشو،یا قتل کړې شو.نو ښځه به وارثه وی وَرِثَتْ إِنْ مَاتَ فِي

حل اللغة: ① محصور: په قلعه کي بند ② بارز: مقابلې لپاره راوتلې وو ]

تشریح:- صورت د مسئلې دا دې.چه یوکس په قلعه کي بندیوان وی .یادشمنانونودقلعې محاصره کړې وی .یا دې د جنګ په صف کښې وی .اوپه داسې حالت کي ده خپلې ښځې ته درې طلاقه ورکړل.اوبیا دا سړې مړ شو.نودا ښځه به وارثه نه وی .اوکه یوکس د جنګ دصفت نه رابهرشو.اودقتال لپاره دشمن ته مخکې شو.یا د قصاص یا رجم لپاره اووتلو.اوخپلې ښځې ته ئې درې طلاقه ورکړل.اودې هم په دغه سبب یا په بل سبب سره مړ شی ،نو ښځه به میراث اوړی .

وَأَصْلُهُ مَا بَيَّنَّا او ددې اصل هغه دې.کوم چې موږ بیان کړې دې أَنَّ امْرَأَةَ الْفَارِّ تَرِثُ اسْتِحْسَانًا چې ( طلاق ورکول او میراث نه) د تختیدونکی ښځه به استحساناً وارثه وی

تشریح:-ددې مسئلې اصل مونږوړاندې بیان کړې دې.چه د فارسړی ښځه به استحساناً وارثه وی .قیاسا به نه وی .د استحسان وجه په وړاندینئ مسئله کي په تفصیل سره تیره شوې ده.اود قیاس وجه دا ده.چه د وراثت سبب د مرګ په وجه د نکاح ختمیدل دی .اودې کس چونکه د درې طلاقه په ذریعه د مرګ نه وړاندې د میراث سبب ختم کړلو.نودمیراث سبب موجود نشو.اوچه سبب نه وی .نومسبب هم نه وی .نودا ښځه خکه د خپل خاوند نه میراث نشی اوړې.

وَإِنَّمَا يَثْبُتُ حُكْمُ الْفِرَارِ بِتَعَلُّقِ حَقِّهَا بِمَالِهِ اود بګوړه حکم به هغه وخت ثابتیږی .چه ( کله) ښځې حق دده مال سره متعلق شی

تشریح:-پاتې شوه دا خبره چې دفرار حکم به کلې ثابتیږی .نوپه دې مسئله کي دصاحب هدایه رحمه الله رائې دا ده.چه په کوم وخت کي دښځې حق د خاوند دمال سره متعلق وی .نوپه هغه وخت کي حکم د فارثابتیږی . یعنی که په دغه وخت کي خاوندخپلې ښځې ته طلاق بائن ورکړلو.نودا به طلاق فار وی .

وَإِنَّمَا يَتَعَلَّقُ بِمَرَضٍ يُخَافُ مِنْهُ الْهَلَاكُ غَالِبًا كَمَا إِذَا كَانَ صَاحِبَ الْفِرَاشِ او( د ښځې حق د خاوند مال سره) داسې مرض سره به متعلق وی .چه په هغې سره د هلاکت یره غالبه وی .لکه چې دې کله صاحب فراش وی وَهُوَ أَنْ يَكُونَ بِحَالٍ لَا يَقُومُ بِحَوَائِجِهِ كَمَا يَعْتَادُهُ الْأَصِحَّاءُ .( اوپه کوم مرض سره چې د هلاکت یره غالبه وی ) هغه مریض دې.چه په داسې حالت کي وی .چه د صحت مندو پشان په عامه توګه خپل ضروریات نشی پور کولې

حل اللغة: ① یعتاد: عادت دی ]

تشریح:- اودښځې د خاوند دمال پورې حق په هغه وخت کي ثابتیږی .چه دې په داسې مرض کي اخته وی .چه په هغې کي دهلاکت ویره غالبه وی .مثلاً خاوند صاحب فراش وی .صاحب دهدایه رحمه الله د صاحب فراش تعریف داسې کوی .① چه هغه دروغوکسانوپشان دخپلوضروریاتوپه پوره کولوباندې قادرنه وی .مثلاً جمات ته تلې شی .خود قضاء حاجت په پوره کولوقادر نه وی .② شمس الائمه سرخسی رحمه الله فرمائیلی دی چه صاحب فراش به ورته هله وئیلی شی .چه جمات په تلوباندې قادر نه وی .اوچه بازاری سړې دوکان ته تلوباندې قادرنه وی .اوښځه دکورچت ته په ختلوباندې قادره نه وی .③ اوکه ناجوړه په کورکي دننه خپل ضروریات پوره کولې شی .مثلاً بیت الخلاء ته تلل،اودکور نه بهرد ضروریاتوپه پوره کولوباندې قادرنه وی .نودبخارا دعاموسشائخو رحمهم الله په نیزدا د مرض الموت په حکم کي دې.اودبلخ دعاموسشائخو رحمهم الله په نیزد روغ په حکم کي دې.④ اومتاخرینو رحمهم الله عالمانوفرمائیلی دی .که د بل د مددنه بغیردرې قدمه تلې شی .نودې روغ دې.خودا قول ضعیف دې.

وَقَدْ يَثْبُتُ حُكْمُ الْفِرَارِ بِمَا هُوَ فِي مَعْنَى الْمَرَضِ فِي تَوَجُّهِ الْهَلَاكِ الْغَالِبِ او کله د فرار حکم ثابتیږي .هغه شی سره،چه په غالب هلاکت کي دمرض الموت په معنی کي وی

تشریح:صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی .چه دفرارحکم صرف په مرض کي منحصرنه دي.بلکه هرهغه ځیزچه دهغي نه د هلاکت ویره غالبه وی .هغه د مرض الوفات په حکم کښي دي.اوپه هغي سره به دفرارحکم ثابتیږي .مثلاً په دریاب کي په کښتۍ کي دي.اوپه دریاب کي داسي چپې راغلي.چه په هغي کي دډوبیدوګمان غالب وو.نوکه په دي داسي حالت کي خاوند خپلي ښځي ته طلاق بائن ورکړلو.نود فرارحکم به ثابتیږي .

وَمَا يَكُونُ الْغَالِبُ مِنْهُ السَّلَامَةُ لَا يَثْبُتُ بِهِ حُكْمُ الْفِرَارِ او هغه امر چي په هغي سره سلامتي غالبه وی .په هغي سره د فرار حکم نه ثابتیږي فَالْمَحْصُورُ نوکوم کس ( چي په قلعه کي ) محصور وی وَالَّذِي فِي صَفِّ الْقِتَالِ او دجنګ په صف کي وی الْغَالِبُ مِنْهُ السَّلَامَةُ دده نه سلامتی غالب ده لِأَنَّ الْحِصْنَ يَدْفَعُ بَأْسَ الْعَدُوِّ ځکه چي قلعه خو د دشمن ضررلري کاوه لپاره وی وَكَذَا الْمَنَعَةُ اوهم دغه ډول لښکرهم دي فَلَا يَثْبُتُ بِهِ حُكْمُ الْفِرَارِ نو په دي سره به ( حکم د) فرار نه متحقق کیږي

حل اللغة* ① الحصن:قلعه ② باس: چور ③ العدو: دشمن ]

تشریح:-اوکه داسي عارض وی .چه دهغي نه د راتلونه روسته د سلامتیا امید غالب وی .نوپه هغي سره د فرارحکم نه ثابتیږي .نوکوم کس چي په قلعه کي وی .اوځوك چي د جنګ په صف کي ولاړ وی .په دي کي د سلامتیا ګمان غالب دي.په دي سره دفرارحکم نه ثابتیږي .دسلامیتا د غلبي دلیل دا دي.چه قلعه د دشمن د ضرر لري کاوه لپاره وی .اوهم دا حکم د لښکردي.

وَالَّذِي بَارَزَ أَوْ قُدِّمَ لِيُقْتَلَ الْغَالِبُ مِنْهُ الْهَلَاكُ فَيَتَحَقَّقُ بِهِ الْفِرَارُ وَلِهَذَا أَخَوَاتٌ تُخَرَّجُ عَلَى هَذَا الْحَرْفِ او ددي مسئلي نور مثالونه هم دی .چه په دي اصل سره به راوښکلي شی

حل اللغة* ① الفرار:تختیدل ② اخوات:جمع د اخت، خور،یعنی نظائراو مثالونه]

تشریح:-اوهغه کس کوم چي د مقابلي لپاره د صف نه بهرشی .یا دقتل لپاره وړاندي کړي شی .نوپه دي کي هلاکت غالب دي.نوپه دي سره د فرارحکم نه ثابتیږي .

اوددي مسئلي نورډیرنظائردی .کوم چي هم په دي اصولوباندي مستنبط کولي شی .مثلاً حامله ښځه د روغي ښځي په حکم کی ده.اوچه دردولادت پیل شی .نودا د مریضي په حکم کي ده.

وَقَوْلُهُ إِذَا مَاتَ فِي ذَلِكَ الْوَجْهِ أَوْ قُتِلَ دَلِيلٌ عَلَى أَنَّهُ لَا فَرْقَ بَيْنَ مَا إِذَا مَاتَ بِذَلِكَ السَّبَبِ اود امام محمد رحمه الله قول «إذا مات فی ذالك الوجه اوقتل» په دي خبره باندي دلیل دي.چه هیڅ توپیر نشته.چه په دي سبب سره مړ شی أَوْ بِسَبَبٍ آخَرَ كَصَاحِبِ الْفِرَاشِ بِسَبَبِ الْمَرَضِ إِذَا قُتِلَ یا په بل سبب سره مړشی .لکه د مرض په وجه چي صاحب فراش کله قتل کړي شو

حل اللغة* ① صاحب الفراش: هغه کس چي د مرګ په بستره پروت وی ]

تشریح:صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی .چه دامام محمد رحمه الله قول «إذا مات فی ذلك الوجه أوقتل» ددي خبري دلیل دي.چه په دي دواړوکي څه توپیر نشته.چه دي هم په دغه سبب باندي مړشی یا په بل سبب باندي.مثلاً یوکس د مرض په وجه صاحب الفراش دي.اودي قتل کړي شو.نودده ښځه به د فراردحکم په وجه میراث داره وی .والله اعلم بالصواب.

## په حالت دصحت کي د «إذا جاء رأس الشهر..فانت طالق» وغیره احکام

وَإِذَا قَالَ الرَّجُلُ لِامْرَأَتِهِ وَهُوَ صَحِيحٌ اوکه د صحت په حالت کي سړی خپلي منکوحي ته اوونیل إِذَا جَاءَ رَأْسُ الشَّهْرِ أَوْ إِذَا دَخَلْتِ الدَّارَ أَوْ إِذَا صَلَّى فُلَانٌ الظُّهْرَ أَوْ إِذَا دَخَلَ فُلَانٌ الدَّارَ چي کله د سپوږمۍ ړومبۍ شپه راشی .یاکله چي ته



کورته داخله شي،یا کله چي فلانی سړی د ماپښین لمونځ اوکړی .یا کله چي فلانی کس کور کښي داخل شي فَأَنْتِ طَالِقٌ نو ته دي طلاقه ئې فَكَانَتْ هَذِهِ الْأَشْيَاءُ وَالزَّوْجُ مَرِيضٌ نودا خبري موجود شوي،اوحال داچه خاوند بیمار دي لَمْ تَرِثْ نو ښځه به وارثه نه وی وَإِنْ كَانَ الْقَوْلُ فِي الْمَرَضِ اوکه قول ( د خاوند معلق کول) د مرض په حالت کي وی وَرِثَتْ إِلَّا فِي قَوْلِهِ إِذَا دَخَلْتِ الدَّارَ نو ښځه به وارثه وی .خو دده په قول «إذا دخلت الدار» کي

تشریح:- په دي عبارت کي دتعلیق څلورصورتونه زیربحث دی .① سړی د صحت په زمانه کي خپلي ښځي ته اوونیل.«إذا جاء راس الشهرفانت طالق» ② یا ئې ورته اوونیل.«إذا دخلت الدارفانت طالق» ③ یا ئې اوونیل.«إذا صلی فلان الظهرفانت طالق» ④ یا ئې اوونیل.«إذا دخل فلان الدارفانت طالق»

په «انت طالق» کي طلاق بائن مراد دي.ځکه چي دفرارحکم په طلاق بائن سره ثابتیږي .بهرحال دتعلیق په دي څلوروصورتونوکښي که شرط د خاوند په مرض الوفات کي موجود شو.اوکه د خاوند تعلیق هم په مرض الوفات کي وی .نود «إذا دخلت الدار» نه علاوه په پاته دري صورتونوکي به وارثه وی .

وَهَذَا عَلَى وُجُوهٍ اودا په یوڅو صورتونو باندي ده إِمَّا أَنْ يُعَلِّقَ الطَّلَاقَ بِمَجِيءِ الْوَقْتِ یا خوطلاق د یو وخت په راتلو باندي معلق کړی أَوْ بِفِعْلِ الْأَجْنَبِيِّ أَوْ بِفِعْلِ نَفْسِهِ أَوْ بِفِعْلِ الْمَرْأَةِ،یا د اجنبی په فعل باندي یا په خپل فعل باندي یا د ښځي په فعل باندي وَكُلُّ وَجْهٍ عَلَى وَجْهَيْنِ اود هرصورت دوي [دوه] وجهي دي

تشریح:- ددي څو صورتونه دی .① اول دا چي طلاق ئې د وخت په راتلوپوري معلق کړي وی .② دوهم دا چي داجنبی په فعل پوري ئې معلق کړي وی .③ دریم دا چي په خپل فعل پوري ئې معلق کړي دی .④ څلورم دا چي دښځي په فعل پوري ئې معلق کړی .بیا په دي کي دهریودوي [دوه] دوي [دوه] صورتونه دی .اول دا چي تعلیق په حالت د صحت کي وی .اووقوع د شرط په حالت د مرض کي وی . دوهم دا چي دواړه په حالت د مرض کي وی .

أَمَّا إِنْ كَانَ التَّعْلِيقُ فِي الصِّحَّةِ وَالشَّرْطُ فِي الْمَرَضِ أَوْ كِلَاهُمَا فِي الْمَرَضِ یا خو معلق کول د صحت په حالت کي وو.او د شرط( موجود کیدل) په مرض الموت کښي یا دواړه په مرض الموت کي دی أَمَّا الْوَجْهَانِ الْأَوَّلَانِ،بهرحال ړومبۍ دوي [دوه] وجهي وَهُوَ مَا إِذَا كَانَ التَّعْلِيقُ بِمَجِيءِ الْوَقْتِ اوهغه دا چي تعلیق د یو وخت په راتلو باندي، په دي طریقه ووایي بِأَنْ قَالَ إِذَا جَاءَ رَأْسُ الشَّهْرِ فَأَنْتِ طَالِقٌ چي کله د سپوږمۍ ړومبۍ شپه راشی .نو ته دي طلاق ئې أَوْ بِفِعْلِ الْأَجْنَبِيِّ بِأَنْ قَالَ إِذَا دَخَلَ فُلَانٌ الدَّارَ أَوْ صَلَّى فُلَانٌ الظُّهْرَ یا د اجنبی په فعل باندي په دي طریقه چي کله فلانی کورته داخل شی .یا فلانی د ماپښین لمونځ اوکړی فَإِنْ كَانَ التَّعْلِيقُ وَالشَّرْطُ فِي الْمَرَضِ اومعلق کیدل اود شرط موجود کیدل دواړه په مرض الموت کي واقع شی فَلَهَا الْمِيرَاثُ نود ښځي لپاره به میراث وی

تشریح:- پاتي شوه دا چي تعلیق په مرض الموت کي وی .اوشرط په حالت د صحت کي واقع شی .یا دواړه په حالت د صحت کي وی .نوپه دي دواړو صورتونوکي به بیشکه طلاق واقع کیږي .اوښځه به وارثه نه وی .مصنف رحمه الله دا دواړه صورتونه پریښولي (پریخودي) دی .

بیا چي دي څلور واړو صورتونوته په دي دوو کي ضرب ورکړي شی .نواته قسمه شول.چه تفصیل ئې دا دي.① اولنی دوي [دوه] صورتونه،یعنی چي تعلیق د یووخت په راتلو پوري وی .مثلاً اووائی .«إذا جاء راس الشهرفانت طالق» ② دوهم دا چي تعلیق د اجنبی په فعل پوري وی .مثلاًاووائی .«إذا دخل فلان الداریا صلی فلان الظهرفانت طالق» اوتعلیق اوشرط دواړه په مرض الوفات کي موجود شی .نودښځي لپاره به میراث وی .

لِأَنَّ الْقَصْدَ إِلَى الْفِرَارِ قَدْ تَحَقَّقَ مِنْهُ بِمُبَاشَرَةِ التَّعْلِيقِ فِي حَالٍ تَعَلَّقَ حَقُّهَا بِمَالِهِ ځکه چې د فرار اراده کول د خاوند د اړخه ثابت شو. د تعليق ارتکاب کاوه په وجه په داسې حالت کې چې د ښځې حق د خاوند مال سره متعلق شوی وو

تشريح:-دلیل دا دې چه دفرار قصد کول دښځې د اړخه ثابت شوی دی. ځکه چې ده په داسې وخت کې تعليق کړې دې چه د ښځې حق د خاوند په مال پورې متعلق وو. نوهرکله چې د خاوند فار کیدل ثابت شو. نودده طلاق به طلاق فاروی. اودده ښځه به امراة الفاروی. اوامراة د فار زمونږ په نیزوارثه وی. نوځکه به دا هم وارثه وی.

وَإِنْ كَانَ التَّعْلِيقُ فِي الصِّحَّةِ وَالشَّرْطُ فِي الْمَرَضِ اوکه معلق کول د صحت په حالت کې وی. اود شرط موجودکیدل په مرض الموت کې وی لَمْ تَرِثْ نو ښځه به وارثه نه وی

تشريح:-اوکه تعليق په حالت د صحت کې وی. اود شرط وجودپه مرض الوفات کې وی. نوپه دې صورت کې به ښځه وارثه نه وی. او

وَقَالَ زُفَرُ رَحِمَهُ اللّٰهُ تَرِثُ او امام زفر رحمه الله فرمائیلی دی. چه ښځه به وارثه وی لِأَنَّ الْمُعَلَّقَ بِالشَّرْطِ يَنْزِلُ عِنْدَ وُجُودِ الشَّرْطِ كَالْمُنَجَّزِ ځکه چې کوم طلاق معلق بشرط وی. هغه دشرط موجودکیدلو په وخت داسې واقع کیږی. لکه چې غیرمعلق فَكَانَ إِيقَاعًا فِي الْمَرَضِ نو په مرض الموت کې طلاق واقع شو

تشريح:- امام زفر رحمه الله فرمائیلی دی. چه وارثه به وی. دلیل دا دې چه کوم طلاق په شرط پورې معلق وی. نوهغه د شرط د وجود په وخت کې داسې واقع کیږی. لکه طلاق منجز، یعنی غیرمعلق، نودا داسې شوه. لکه چې په مرض الوفات کې فی الحال طلاق ورکړې وی. اوپه مرض الموت کې طلاق ورکول طلاق د فار وی. نودې ته به هم طلاق فاروئیلې شی. اود طلاق فارپه صورت کې ښځه وارثه وی. نوپه دې صورت کې به هم ښځه وارثه وی.

وَلَنَا أَنَّ التَّعْلِيقَ السَّابِقَ يَصِيرُ تَطْلِيقًا عِنْدَ الشَّرْطِ حُكْمًا لَا قَصْدًا او زمونږ دلیل دادې چه تعليق د تیرشوی شرط موجود کیدلو په وخت حکماً تعليق وی. قصداً به نه وی وَلَا ظُلْمَ إِلَّا عَنْ قَصْدٍ او ظلم نه کیږی. خو په اراده سره فَلَا يُرَدُّ تَصَرُّفُهُ نودده تصرف به نشی رد کولې:

تشريح:- تشريح:-اوزمونږدلیل دا دې چه تعليق سابق د وجود شرط په وخت کې حکماً تعليق وی. قصداً نه وی. اوددې ثبوت د دوو مسئلونه کیږی. یوه داچه یوعاقل بالغ دښځې طلاق په شرط پورې معلق کړلو. بیا شرط په موجود شو. په داسې وخت کې چې خاوند لیونې وی. نوطلاق به واقع کیږی. سره ددې چې د لیونی طلاق نه واقع کیږی. نوثابته شوه چې تعليق سابق د شرط د وجود په وخت کې قصداً تطليق نه وی. بلکه حکماً تطليق وی.

وَأَمَّا الْوَجْهُ الثَّالِثُ پاتې شو دریم صورت وَهُوَ مَا إِذَا عَلَّقَهُ بِفِعْلِ نَفْسِهِ فَسَوَاءٌ كَانَ التَّعْلِيقُ فِي الصِّحَّةِ وَالشَّرْطُ فِي الْمَرَضِ أَوْ كَانَا فِي الْمَرَضِ چې کله ئې طلاق پخپل فعل باندې معلق کړې وی. برابره ده. چه تعليق د صحت په زمانه کې او شرط په مرض الموت کې وی. یا دواړه په مرض الموت کې وی وَالْفِعْلُ مِمَّا لَهُ مِنْهُ بُدٌّ أَوْ لَا بُدَّ لَهُ مِنْهُ ،،(که) فعل داسې شی وی. چه د خاوند لپاره ددې نه خلاصیدل شته. یا فعل داسې شی دې. چه د خاوند لپاره ددې نه خلاصیدل نشته. يَصِيرُ فَارًّا لِوُجُودِ قَصْدِ الْإِبْطَالِ نو شی به خاوند فار ( تختیدونکې) قصداً د ابطال موجود کیدلو په وجه إِمَّا بِالتَّعْلِيقِ أَوْ بِمُبَاشَرَةِ الشَّرْطِ فِي الْمَرَضِ یاخو ( په مرض الموت کې ) د معلق کیدلو په وجه یا په مرض الموت کې دشرط ارتکاب کاوه په وجه



تشريح:-پاتې دریم صورت چې دښځې طلاق خاوند په خپل ذاتی فعل پورې معلق کړلو. نوپه دې کې دواړه صورتونه یوشان دی. برابره ده که تعليق په صحت کې وو. اووجود د شرط په مرض الوفات کې وو. اوبرابره ده که فعل داسې وی. چه د خاوند لپاره دهغې دکولوګنجائش وی. مثلاً د شرط فعل د زید سره خبرې کول وی. یا فعل داسې وی. چه د خاوند لپاره دهغې نه خلاصې نه وی. مثلاً فرض لمونځ کول، یا خوراك کول، یاقضاء حاجت وغیره، بهرحال په دې دریم صورت کې به خاوندته فار وئیلې شی. اودده ښځه به وارثه وی. نود خاوندتصرف به رد وی. چه ښځې ته دمیراث نه د محروم کیدوضرر اونه رسی.

وَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ مِنْ فِعْلِ الشَّرْطِ بُدٌّ اوکه دده لپاره دفعل نه خلاصې نه وو فَلَهُ مِنَ التَّعْلِيقِ أَلْفُ بُدٍّ نو دده لپاره معلق کاوه نه په زرګاؤ خلاصیدل ( حاصل) وو فَيُرَدُّ تَصَرُّفُهُ دَفْعًا لِلضَّرَرِ عَنْهَا نود سړی تصرف به ردکولې شی. دښځې نه د ضرر لرې کاوه لپاره.

تشريح:-په «وإن لم يكن له من فعل الشرط بد» سره داشکال ځواب دې. اشکال دا دې. چه سړی طلاق په داسې فعل پورې معلق کړلو. دکوم د نه کولوهڅو ګنجائش نه وی. بلکه دهغې کول ضروری وی. مثلاً فرض لمونځ کول. نو خاوند د شرط فعل کولوته مجبورشو. اوبکارده چې دده تصرف رد نکړې شی.

ځواب دا دې. چه دا خبره صحیح ده. چه د خاوند لپاره د ددغه فعل کولونه خلاصې نشته. خوپه تعليق کولوکښې ده ته په زرګاؤ کرته خلاصې وو. یعنی داسې ډیرافعال وو. چه دهغې د نه کولوګنجائش وو. چه په هغې پورې ئې تعليق کړې وو. په دې فعل پورې د تعليق څه اړتیا وو. نودده امله به دده تصرف رد وی.

وَأَمَّا الْوَجْهُ الرَّابِعُ او پاتې شو څلورم صورت وَهُوَ مَا إِذَا عَلَّقَهُ بِفِعْلِهَا هغه داچه هرکله د ښځې په فعل باندې ده طلاق معلق کړې وی فَإِنْ كَانَ التَّعْلِيقُ وَالشَّرْطُ فِي الْمَرَضِ نو که معلق کول اود شرط موجود کیدل، ( دواړه) په مرض الموت کې دی ،وَالْفِعْلُ مِمَّا لَهَا مِنْهُ بُدٌّ كَكَلَامِ زَيْدٍ وَنَحْوِهِ او فعل د هغه څیزونو څنې دې چې د هغې نه د ښځې لپاره ددې خلاصې شته لَمْ تَرِثْ نو دا به میراث نه وړي لِأَنَّهَا رَاضِيَةٌ بِذٰلِكَ ځکه دا ښځه په خپله دخپل حق ساقط کولوباندې راضی شوه

تشريح:-اوڅلورم صورت یعنی چې طلاق د ښځې په فعل پورې معلق کړی. نوددې حکم دا دې. چه تعليق اود شرط وجود دواړه په مرض الوفات کښې وی. اوفعل شرط دا وی. چه دهغې نه کولوګنجائش وی. مثلاً فعل شرط د زید سره خبرې کول وی. نودا ښځه به وارثه نه وی.

دلیل دا دې. چه د فعل شرط د کولوپه وجه دا ښځه په خپله دخپل حق ساقط کولوباندې راضی شوه. ګنې دا خبره به ئې نه کوله.

وَإِنْ كَانَ الْفِعْلُ مِمَّا لَا بُدَّ لَهَا مِنْهُ كَأَكْلِ الطَّعَامِ وَصَلَاةِ الظُّهْرِ وَكَلَامِ الْأَبَوَيْنِ اوکه فعل د هغه څیزونو څنې دې. چه د هغې نه د ښځې لپاره ددې نه خلاصې نشته. لکه خوراك خوړل، اود ماپښین لمونځ کول، او لکه مورپلار سره کلام کول تَرِثُ نودا ښځه به ( دده) وارثه وی لِأَنَّهَا مُضْطَرَّةٌ فِي الْمُبَاشَرَةِ ځکه چې دې ددې فعل په کولوکې مضطر ( مجبور) دې لِمَا لَهَا فِي الِامْتِنَاعِ مِنْ خَوْفِ الْهَلَاكِ فِي الدُّنْيَا أَوْ فِي الْعُقْبٰى ځکه چې دې ښځې ته ددې فعل نه په بچ کیدلوکې په دنیا کې یا په آخرت کې د هلاکت یره ده وَلَا رِضَا مَعَ الِاضْطِرَارِ او اضطرار سره رضامندی نه ( جمع) کیږی

که فعل شرط داسې وی. چه دهغې نه کولوګنجائش نه وی. بلکه ضروری وی. مثلاً خوراك کول، د ماپښین لمونځ کول، دمورپلارسره خبرې کول، مثلاً چې سړی په مرض الوفات کې خپلې ښځې ته اووئیل. که تاخوراك اوکړلو. نوته به طلاقه ئې. یا که دې د ماپښین لمونځ اوکړلو. یا دې دمورپلار سره خبرې اوکړلې. نوتاته د طلاق وی. اوس که ښځې په مرض الوفات کې دا کار اوکړلو. نوطلاق به واقع کیږی. اوکه په عدت کښې

خاوند مړشو.نودا ښځه به وارثه وی .

دلیل دا دی.چه دا ښځه ددي فعل په کولوکي مضطره اومجبوره ده.ځکه چې دښځې د دې فعل نه د منع کیدوېه وجه په دنیا کښې دهلاکت ویره ده.یا په آخرت کي .لکه خوراك اوفرض لمونځ یا د مور پلار سره خبرې کول.اود اضطرارسره رضامندی نه ثابتیږی .نودا نښی ونیلې چې دا ښځه دخپل حق په ساقط کولوباندي راضي ده.

**وَأَمَّا إِذَا كَانَ التَّعْلِيقُ فِي الصِّحَّةِ وَالشَّرْطُ فِي الْمَرَضِ**،او بهرحال که معلق کول په صحت کي اود شرط موجود کیدل) په مرض الموت کي وی **فَإِنْ كَانَ الْفِعْلُ مِمَّا لَهَا مِنْهُ بُدٌّ**(نو) که فعل د هغه ځیزونو څخه وی چه د هغې نه ښځې لپاره خلاصې وی **فَلَا إِشْكَالَ أَنَّهُ لَا مِيرَاثَ لَهَا**نو هیڅ اشکال نشته.چه د ښځې لپاره به میراث نه وی

تشریح:- که تعلیق په حالت د صحت کي وی .اودشرط وجود په حالت دمرض الوفات کي وی .نواوس که داسې فعل وی .چه دهغې د نه کولوگنجائش وی .اوبغیرد کولونه هم کارچلیږی .مثلاً دخول داردا د ښځې په اختیارکي دی .چه داخله نشی .خوکه داخله شی .نوطلاق به واقع کیږی .خومیراث به ورته نه ملاویږی .

**وَإِنْ كَانَ مِمَّا لَا بُدَّ لَهَا مِنْهُ**.اوکه فعل داسې شی وی .چه دښځې لپاره ددې نه خلاصې نه وی **فَكَذَلِكَ الْجَوَابُ عِنْدَ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللَّهُ**[1] نود امام محمد رحمه الله په نیز هم دا حکم دی **وَهُوَ قَوْلُ زُفَرَ** اوهم دا د امام زفر رحمه الله قول دی **لِأَنَّهُ لَمْ يُوجَدْ مِنَ الزَّوْجِ صُنْعٌ بَعْدَ مَا تَعَلَّقَ حَقُّهَا بِمَالِهِ**ځکه چې د خاوند د اړخه هیڅ عمل اونه موندې شو.د خاوند د مال سره د ښځې حق متعلق کیدلو نه پس

تشریح:- که شرط داسې فعل وی .چه دهغې نه بغیرخلاصې نه وی .نودامام محمداوامام زفر رحمهما الله په نیزپه دې صورت کي هم دا حکم دی.یعنی ښځه به وارثه نه وی .

دلیل دا دی.چه خاوند په کوم وخت کي طلاق معلق کړی وو.نوپه هغه وخت کي د خاوند په مال پورې د ښځې حق متعلق نه وو.اوکله چې په مرض الوفات کي دښځې حق د خاوند په مال پورې معلق شو.نود خاوند داړخه څه عمل نه دی ملاؤ شوی.نوخاوندبه په قصد الی الضررباندې نښی متهم کولې .یعنی دده ښځه به امراة الفار نه وی .اوچه امراة فارنه ده.نودوارثه به هم نه وی .

**وَعِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُمَا اللَّهُ تَرِثُ**اود ابوحنیفه او ابویوسف رحمهما الله نه په نیز به وارثه وی **لِأَنَّ الزَّوْجَ أَلْجَأَهَا إِلَى الْمُبَاشَرَةِ**ځکه چې خاوند ددې فعل په کاوه مجبوره کړې ده **فَيَنْتَقِلُ الْفِعْلُ إِلَيْهِ كَأَنَّهَا آلَةٌ لَهُ كَمَا فِي الْإِكْرَاهِ** نودا فعل به سړی اړخ ته منتقل کیږی .ګویا ښځه (په دې کارکي ) دسړی آله ده.لکه څنګه چې په اکراه کي کیږی.

حل اللغة* ① الجا: مجبوره کړه ② الاکراه: جبر،زور]

تشریح:- دشیخینو رحمهما الله مذهب دا دی.چه وارثه به وی .دلیل دا دی.چه دا فعل داسې دی.چه دښځې لپاره ددې فعل د نه کولوگنجائش نشته.نودا فعل به خاوند اړخ ته منسوب وی .ځکه چې هم خاوند ښځه ددې فعل کولومجبوره کړې ده.لکه څنګه چې په اکراه کي وی .مثلاً زیدبکرد چا دمال په هلاکت باندې مجبوره کړلو.اوهغه دغه مال هلاك کړلو.نوضمان به په زیدراځی .ځکه چې د مکره (بفتح الراء) فعل د مکره (بکسرالراء) ته منتقل کیږی .نودغه ډول به دلته هم د ښځې فعل خاوند ته منتقل کیږی .لکه چې خاوند په مرض الموت کي ددې فعل شرط عمل اوکړلو.نوځکه به ښځه وارثه وی .ځکه چې خاوند فاردی.والله اعلم

[1] القول الراجح هو قول محمد رحمه الله كذا فی ردالمحتار(۵۶۹\۲) وفتح القدير(۱۱\۴) ومجمع الأنهر(۴۳۱\۱) وشرح عقود (ص،۲۹) عن القول الراجح (۳۳۷\۱)_



## په حالت د مرض کي درې طلاقه ورکول اوبیا روغیدل

**قَالَ**امام محمد رحمه الله په جامع صغیرکي ) فرمائی . **وَإِذَا طَلَّقَهَا ثَلَاثًا وَهُوَ مَرِيضٌ** اوکه (خاوند) دې ته درې طلاق ورکړل.په داسې حال کي چې دې بیمار دې **ثُمَّ صَحَّ ثُمَّ مَاتَ**بیا صحت مندشو.بیا مړشو **لَمْ تَرِثْ**نو ښځه به وارثه نه وی

تشریح:- دقال فاعل امام محمد رحمه الله دی.خودجامع صغیرپه اکثرونسخوکي د قال لفظ نشته.(عنیی ) صورت د مسئلې دا دی.چه خاوندخپلې ښځې ته په حالت د مرض کي طلاق ورکړلو.بیا روغ شو. او مړ شو.نودده دا ښځه به وارثه نه وی .

**وَقَالَ زُفَرُ رَحْمَةُ اللَّهِ تَعَالَى عَلَيْهِ: تَرِثُ**او امام زفر رحمه الله فرمائی .چه وراثه به وی **لِأَنَّهُ قَصَدَ الْفِرَارَ حِينَ أَوْقَعَ فِي الْمَرَضِ**ځکه چې خاوند فرار اراده کړې ده.په کوم وخت چې ده د بیمارئ په حالت کي طلاق ورکړو **وَقَدْ مَاتَ وَهِيَ فِي الْعِدَّةِ** او حال داچه دې مړشو.او ښځه په عدت کي ده

تشریح:- اوامام زفر رحمه الله فرمائی .چه وارثه به وی . دلیل دا دی.چه خاوند په حالت د مرض کي طلاق ورکړلو.اودفراراراده ئې کړې ده. او خاوند د ښځې په عدت کي وفات شوی دی.نودا ښځه امراة فارده.اوامراة فاروارثه وی .نودابه هم وارثه وی . اوهغه صحت چې دمرض اومرګ په مینځ کي حائل وی .غیرمعتبردی.

**وَلَكِنَّا نَقُولُ: الْمَرَضُ إِذَا تَعَقَّبَهُ بُرْءٌ**خو موږ وایو.چه کله د بیمارئ نه روسته روغ شی **فَهُوَ بِمَنْزِلَةِ الصِّحَّةِ**نودا په منزله دصحت دی **لِأَنَّهُ يَنْعَدِمُ بِهِ مَرَضُ الْمَوْتِ فَتَبَيَّنَ**ځکه چې په دې وجه مرض الموت معدوم شو.نو ښکاره شوه **أَنَّهُ لَا حَقَّ لَهَا يَتَعَلَّقُ بِمَالِهِ** چې د ښځې لپاره هیڅ حق داسې نشته.چه دا د خاوند مال سر متعلق ی **فَلَا يَصِيرُ الزَّوْجُ فَارًّا** نو خاوند به فار(تختیدونکي) نه وی .

حل اللغة* ① تعقب:روستو راشی ② برء: صحت،روغوالي]

تشریح:-خوزموږد اړخه خواب دا دی.چه کوم مرض نه روسته صحت وی .هغه دصحت په مرتبه کي دی.ځکه چې دصحت په وجه خومرض الموت معدوم شو.نوښکاره شوه.چه د خاوند په مال پورې دښځې حق متعلق نه دی. نودا خاوندفار نه دی.اوچه خاوندفار نشو.نودده ښځه به امراة فار نه وی .اوچه امراة فارنشوه.نووارثه به هم نه وی .

## په مرض الموت کي د طلاق نه روسته د ښځې ارتداد

**وَلَوْ طَلَّقَهَا**اوکه ښځې ته ئې (په مرض الموت کي) طلاق ورکړو **فَارْتَدَّتْ وَالْعِيَاذُ بِاللَّهِ**بیا معاذالله دا ښځه مرتده شوه **ثُمَّ أَسْلَمَتْ** بیائې اسلام راوړلو **ثُمَّ مَاتَ الزَّوْجُ مِنْ مَرَضِهِ وَهِيَ فِي الْعِدَّةِ**بیا خاوند هم په دې خپل مرض کي مړ شو.په داسې حال کي چې دا ښځه په عدت کي ده **لَمْ تَرِثْ** نو ښځه به وارثه نه وی **وَإِنْ لَمْ تَرْتَدَّ** اوکه دا مرتده شوې نه وه ، **بَلْ طَاوَعَتِ ابْنَ زَوْجِهَا فِي الْجِمَاعِ وَرِثَتْ**بلکه تابعدارئ ئې اوکړله دخپل خاوند د خوی ،په جماع کي نو میراث به اوړی

تشریح:- صورت د مسئلې دا دی.چه خاوند خپلې ښځې ته درې یا یوطلاق بائن ورکړلو.بیا هغه مرتده شوه.والعیاذبالله اوبیا په اسلام کي داخله شوه.اوبیا دا خاوند په خپل دې مرض کي مړشو.اوښځه لاپه عدت کي ده.نوداښځه به دده وارثه نه وی .اوکه مرتده شوې نه وی .بلکه دخپل خاوند د وړاندینی خوئې سره ئې جماع کړې وی .نودا به وارثه وی .

وَوَجْهُ الْفَرْقِ أَنَّهَا بِالرِّدَّةِ أَبْطَلَتْ أَهْلِيَّةَ الْإِرْثِ، وجه د توپیر داده. چه ښځې په مرتد کیدلو سره د میراث لیاقت باطل کړلو إِذِ الْمُرْتَدُّ لَا يَرِثُ أَحَدًا ځکه چې مرتد دچا ( مسلمان) وارث کیدای نشي وَلَا بَقَاءَ لَهُ بِدُونِ الْأَهْلِيَّةِ او د وارث کیدلو د اهلیت نه بغیر وراثت پاته نه پاتي کیږی وَبِالْمُطَاوَعَةِ مَا أَبْطَلَتِ الْأَهْلِيَّةَ اود ابن زوج د مطاوعت په وجه ښځې لیاقت نه دې باطل کړې لِأَنَّ الْمَحْرَمِيَّةَ لَا تُنَافِي الْإِرْثَ ځکه چې دائمی حرام کیدل د وراثت منافی نه دی وَهُوَ الْبَاقِي اودا پاته دې. په خلاف ددې چې ښځې دنکاح موجود کیدلو

حل اللغة* ① المطاوعة: تابعداری ② المحرمية: حرمت، حراموالي]

تشریح:- په دواړومسئلوکي وجه د توپیر دا ده. چه چې د ارتداد په وجه د وراثت لیاقت باطلیږی. ځکه چې مرتد دچا وارث نه وی. اوبغیرداهلیت نه وراثت پاته نه پاتې کیږی. ددې امله مونږوایو. چه دارتداد په صورت کې به ښځه وارثه نه وی. اوداود خاوند دزوې دمطاوعت په وجه اهلیت نه باطلیږی. ځکه چې محرمیت د وراثت سره منافی نه دې. بهرحال د مطاوعت ابن الزوج په صورت کې وراثت پاته دې. ددې امله موږ وایو. چه په دې صورت کې به ښځه وارثه وی.

بِخِلَافِ مَا إِذَا طَاوَعَتْ فِي حَالِ قِيَامِ النِّكَاحِ په حالت کې مطاوعت کړې وی لِأَنَّهَا تُثْبِتُ الْفُرْقَةَ ځکه چې د ابن زوج مطاوعت د نکاح د قیام په حالت کې فرقت ثابتوی فَتَكُونُ رَاضِيَةً بِبُطْلَانِ السَّبَبِ نو دا به دسبب په بطلان باندې راضی وی

تشریح:- البته دا چې د ښځې نکاح موجود وی. اودې د خاوند د ځوئی سره مطاوعت اوکړلو. نوپه یقین سره به وارثه نه وی. دلیل دا دې. چه د ابن الزوج د مطاوعت په وجه فرقت ثابت شو. چه ښځه د وراثت سبب (نکاح) په باطلولو راضی ده.

وَبَعْدَ الطَّلَقَاتِ الثَّلَاثِ لَا تَثْبُتُ الْحُرْمَةُ بِالْمُطَاوَعَةِ لِتَقَدُّمِهَا عَلَيْهَا اود درې طلاقونو نه روسته د مطاوعت په وجه حرمت نه ثابتیږی. په مطاوعت باندې د حرمت مقدم کیدلو په وجه فَافْتَرَقَا نو ( په دواړو صورتونوکې ) توپیر ښکاره شو

تشریح:- که خاوند خپلې ښځې ته درې طلاقه ورکړل. اوبیا ښځې ددې نه روسته د ابن الزوج مطاوعت اوکړلو. اوبیا خاوند هم په دغه مرض کې د ښځې په عدت کې مړ شو. نوښځه به وارثه وی. دلیل دا دې. چه په دې صورت کې حرمت روستو دې. اومطاوعت د ابن الزوج روستو دې. نومعلومه شوه. چه جدائی د ښځې د اړخه نه ده راغلې. بلکه د خاوند د اړخه ده. اووړاندې تیرشوی دی. که په مرض الوفات کې جدائی د خاوند د اړخه وی. نوښځه به ددې امله میراث داره وی. چه د امراة فارښځه ده. نوپه دواړومسئلوکې توپیر ښکاره شو.

## په صحت کې دزناتهمت لګول اوپه مرض الموت کې لعان کول

وَمَنْ قَذَفَ امْرَأَتَهُ وَهُوَ صَحِيحٌ. اوکوم کس چې د صحت په حالت کې پخپله ښځه د نکاح تهمت اولګولو وَلَاعَنَ فِي الْمَرَضِ ([1]) او په مرض الموت کې ئې لعان اوکړو وَرِثَتْ نوښځه به وارثه وی. وَقَالَ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللهُ لَا تَرِثُ او امام محمد رحمه الله فرمائیلي دی. چه ښځه به وارثه نه وی. وَإِنْ كَانَ الْقَذْفُ فِي الْمَرَضِ اوکه تهمت لګول په مرض الموت کې وی وَرِثَتْهُ فِي قَوْلِهِمْ جَمِيعًا نو په اتفاق د آئمه ثلاثه به ښځه ددې وارثه وی

تشریح:- که یوکس په حالت د صحت کې په خپله ښځه باندې د زنا تهمت اولګولو. اوبیا ئې په حالت د مرض کې لعان اوکړلو. اوقاضی د دواړو په مینځ کې تفریق اوکړلو. ددې نه روسته خاوندد ښځې په عدت کې مړ

[1] القول الراجح هو قول الشيخين رحمهما الله كذا فى الدرالمختار(٥٦٨\٢) والهندية (٤٦٤\١) والبحرالرائق (٤٩\٤) نقلاً عن القول الراجح (٣٣٨\١)-



شو. نودا ښځه به وارثه وی. داد شیخینو رحمهما الله مذهب دې. اوامام محمد رحمه الله فرمائی. چه وارثه به نه وی. اوکه دزناتهمت لګول هم په مرض الموت کې وی. نود درې واړه امامانوپه اتفاق سره به دا وارثه وی.

تشریح:- صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی. چه دا حکم په داسې مسئلې پورې لاحق دې. چه په هغې کې طلاق د ښځې په داسې فعل پورې معلق شوې وی. دکوم د پریخودوچه د ښځې لپاره ګنجائش نه وی. بلکه دهغې کول ضروری وی. ځکه چې دا ښځه د قاضی په عدالت کې د مقدمه درج کولوته مجبوره شوه. چه دخپل ځان نه د زنا تهمت لرې کړی. حاصل دا چې په دې تفریق کې د ښځې درضامندۍ څه دخل نشته. بلکه سړی دا په لعان باندې مجبوره کړله. اوددې مسئلې دلیل مونږوړاندې ذکرکړې دې. «وان كان مما لابدلها منه فكذلك الجواب عند محمد وهوقول زفر رحمه الله» لاندې په تفصیل سره بیان شوې دې. هلته دې مطالعه کړې شی. والله اعلم بالصواب.

وَهَذَا مُلْحَقٌ بِالتَّعْلِيقِ بِفِعْلٍ لَا بُدَّ لَهَا مِنْهُ اودا صورت ملحق دې. دداسې فعل تعلیق سره، چه دښځې لپاره ددې نه خلاصې نشته إِذْ هِيَ مُلْجَأَةٌ إِلَى الْخُصُومَةِ لِدَفْعِ عَارِ الزِّنَا عَنْ نَفْسِهَا ځکه چې دا بې بسه ښځه په خصومت باندې مجبوره شوه. د خپل ځان نه د زنا تهمت لرې کاوه لپاره وَقَدْ بَيَّنَّا الْوَجْهَ فِيهِ اوموږ به دې کې وجه بیان کړې ده.

حل اللغة* ① ملجاة: مجبوره ② الخصومة: جګړه ]

صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی. چه دا حکم په داسې مسئلې پورې لاحق دې. چه په هغې کې طلاق د ښځې په داسې فعل پورې معلق شوې وی. دکوم د پریخودوچه د ښځې لپاره ګنجائش نه وی. بلکه دهغې کول ضروری وی. ځکه چې دا ښځه د قاضی په عدالت کې د مقدمه درج کولوته مجبوره شوه. چه دخپل ځان نه د زنا تهمت لرې کړی. حاصل دا چې په دې تفریق کې د ښځې درضامندۍ څه دخل نشته. بلکه سړی دا په لعان باندې مجبوره کړله. اوددې مسئلې دلیل مونږوړاندې ذکرکړې دې. «وان كان مما لابدلها منه فكذلك الجواب عند محمد وهوقول زفر رحمه الله» لاندې په تفصیل سره بیان شوې دې. هلته دې مطالعه کړې شی. والله اعلم بالصواب.

## په صحت کې دښځې نه ایلاء کول اوداایلاء په وجه بینونت راتلل

وَإِنْ آلَى وَهُوَ صَحِيحٌ اوکه د صحت په حالت کې ده خپلې ښځې سره ایلاء اوکړله ثُمَّ بَانَتْ بِالْإِيلَاءِ وَهُوَ مَرِيضٌ بیا د ایلاء په وجه دا بائنه شوه. په داسې حال کې چې دا بیمار دې لَمْ تَرِثْ نو ښځه به دده وارثه نه وی وَإِنْ كَانَ الْإِيلَاءُ أَيْضًا فِي الْمَرَضِ اوکه ایلاء کول هم په مرض الموت کې واقع شوی وی وَرِثَتْ نو دا به وارثه وی.

حل اللغة* ① آلى: ایلاء کول یعنی د خپل ښځې د نزدیکت نه قسم خوړل ]

تشریح:- مسئله دا ده. چه یوکس دخپلې ښځې نه په حالت دصحت کې ایلاء اوکړله. یعنی قسم ئې اوخوړلو. چه څلورمیاشتې یا ددې نه زیاتې مودې پورې به تا سره جماع نه کوم. اوبیادا ایلاء په وجه یعنی څلورمیاشتې بغیروطی نه دتیریدو په وجه دا بائنه شوه. په داسې حالت کې چې خاوند په مرض الموت کې وی. نوپه دې صورت کې دا دخپل خاوند نه وارثه نه ده.

لِأَنَّ الْإِيلَاءَ فِي مَعْنَى تَعْلِيقِ الطَّلَاقِ بِمُضِيِّ أَرْبَعَةِ أَشْهُرٍ خَالِيَةٍ عَنِ الْوِقَاعِ ځکه چې ایلاء کول څلور میاشتې دجماع نه خالی تیریدلو باندې طلاق معلق کول دی فَيَكُونُ مُلْحَقًا بِالتَّعْلِيقِ بِمَجِيءِ الْوَقْتِ نود ایلاء دا صورت هم په وخت راتګ و باندې معلق کاوه سره ملحق دې وَقَدْ ذَكَرْنَا وَجْهَهُ او موږ ددې وجه ذکرکړې ده.

تشریح:- دلیل دا دې. چه بینونت خاوند اړخ ته منسوب دې. اوپه مرض الموت کې د خاوند د اړخه څه شی نه دې موجود شوې. نه د علت عمل اونه شرط، نو خاوند فارنشو. اودده ښځه امراة فار نشوه. نوځکه به دا وارثه نه وی. (عینی شرح هدایه)

اوكه ايلاء كول هم په مرض الموت كي وي .اوبيا دبينونت نه روسته خاوند هم په عدت كي مرشي .نودا ښځه به وارثه وي .ځكه چې د ايلاء معنى داده.چه طلاق په داسې څلورمياشتوتيريدو پورې معلق كړې .چه هغه دجماع نه خالي وي .نودا صورت دهغه صورت سره ملحق شو.چه په هغې كي طلاق په وخت پورې معلق كړې شوې وي .اودهغې وجه موږ وړاندې بيان كړې ده.هلته دې اوكتلې شي .

## په هررجعي طلاق كي دښځې استحاق ميراث

قَالَ رضى الله تعالى عنه مصنف رحمه الله فرمائي . وَالطَّلَاقُ الَّذِي يَمْلِكُ فِيهِ الرَّجْعَةَ هغه طلاق چې په هغې كي خاوند ته درجعت اختيار دې تَرِثُ بِهِ فِي جَمِيعِ الْوُجُوهِ لِمَا بَيَّنَّا د هغې په ټولو صورتونو كي به ښځه وارثه وي .دهغه دليل په وجه كوم چې موږ بيان كړو أَنَّهُ لَا يُزِيلُ النِّكَاحَ حَتَّى يَحِلَّ الْوَطْىُ .چه طلاق رجعي نكاح نه زائل كوي .ترډې چې ددې سره وطى كول حلال دى فَكَانَ السَّبَبُ قَائِمًا نو سبب قائم كړې شو

تشريح:- مصنف رحمه الله په دې عبارت كي دوې [دوه] خبرې بيان كړې دى .يوه داكه خاوند خپلې ښځې ته په مرض الموت كي طلاق رجعي وركړلو.اوبيا په عدت كي مړ شو.نوښځه به وارثه وي .دليل وړاندې تيرشوې دې.چه طلاق رجعي نكاح نه زائله كوي .هم دا وجه ده.چه د طلاق رجعي نه روسته ښځې سره وطى كول جائزده.نود وراثت سبب يعنى نكاح موجود ده.ددې امله به ښځه وارثه وي .

قَالَ وَكُلُّ مَا ذَكَرْنَا أَنَّهَا تَرِثُ إِنَّمَا تَرِثُ إِذَا مَاتَ وَهِيَ فِي الْعِدَّةِ او هرهغه موقع چې موږ ذكركړله.چه ښځه به وارثه وي .نو دا ( به هغه وخت) وارثه وي .چه كله د خاوند د ښځې په عدت كي مړشوې وي وَقَدْ بَيَّنَّاهُ اودا موږ ( په اول باب كي) بيان كړې دى .

تشريح:-دويمه خبره دا ده.چه په كوم حالت كي به ښځه وارثه وي .ددې مطلب دا دې.چه هله به ښځه وارثه وي .چه خاوند په داسې حالت كي مړ شوې وي .چه ښځه په عدت كي وي .اوموږ وړاندې يعنى د باب په پيل كي ددې تفصيل بيان كړې دې.والله أعلم بالصواب

## باب الرجعة

ژباړه دا باب د رجعت په بيان كښې دې .

تشريح:- چونكه رجعت طبعاً د طلاق نه روسته وي .نوځكه نې په ذكركولوكي هم روستوكړلو.چه وضع د طبع سره موافق شى .

رجعت د راء په زور اوزيردواړو سره جائزدې.خوپه زور سره لوستل زيات فصيح دى .﴿ رجع يرجع﴾ د باب ضرب يضرب څنې دې.معنى نې واپس كيدل دى .

په شريعت كي رجعت وائى .دنكاح ملك برابرپاته ساتل.اودرجعت لپاره څوشرطونه دى .هغه هم زده كړئ.

① په صريحى لفظ سره طلاق وركول يا په بعضې كنائى الفاظوسره،دكوم ذكرچه وړاندې تيرشوې دې.يعنى ﴿إعتدى،إستبرئ رحمك، أنت واحدة﴾ ② چه د طلاق په عوض كي مال نه وي .③ درې طلاقه نه وي واقع شوې.④ ښځه مدخول بها وي .⑤ عدت موجود وي .

درجعت ثبوت دكتاالله سنت اواجماع درې واړو نه شوې دې.ځكه ددې په مشروعيت كي د چا خلاف نشته.

① دكتاب الله نه د ثبوت مثال دالله تعالى ارشاد ② ((وَبُعُولَتُهُنَّ أَحَقُّ بِرَدِّهِنَّ)) اوحديث نه نې د ثبوت مثال دنبى ﷺ ارشاد ﴿مرابنك فليراجعها﴾ اونبى ﷺ حضرت سودة ته رجعت كړې وو.③ اودرجعت په صحت باندې اجماع هم منعقده ده.(عينى شرح هدايه)

### د يوبا دوې [دوه] طلاق رجعى نه روسته خاوند ته د رجوع اختيار



وَإِذَا طَلَّقَ الرَّجُلُ امْرَأَتَهُ تَطْلِيقَةً رَجْعِيَّةً أَوْ تَطْلِيقَتَيْنِ اوكله چې سړى خپلې ښځې ته يوطلاق رجعى يادوې [دوه] طلاقه وركړل فَلَهُ أَنْ يُرَاجِعَهَا فِي عِدَّتِهَا رَضِيَتْ بِذَلِكَ أَوْلَمْ تَرْضَ نو سړى ته اختيار دې.چه په عدت كي ښځې سره مراجعت اوكړى .(كه) په دې باندې ښځه راضى وي اوكه نه وي لِقَوْلِهِ تَعَالَى فَأَمْسِكُوهُنَّ بِمَعْرُوفٍ د الله تعالى د قول﴿ ن هوكسماأف ورعنه ﴾ په وجه منع كړه دوى د شرعى دستور مطابق مِنْ غَيْرِ فَصْلٍ بغير دڅه تفصيل نه

تشريح:- مسئله دا ده.چه كله يوكس خپلې مدخول بها ښځې ته يو يا دوې [دوه] طلاق رجعى وركړى .نوسړى ته اختياردې.چه دې ته په عدت كي رجعت اوكړى .كه ښځه پرې راضى وي اوكه نه وي .

دليل دالله تعالى ارشاد دې.((فَأَمْسِكُوهُنَّ بِمَعْرُوفٍ)) يعنى كله چې د ښځوعدت ختميدوته نزدې شى .نوتاسوته اختيار دې.كه رجعت خوښوئ.نودضرر رسولونه بغيردوى ځان سره اوساتئ.اوكه د جلا كولوتراراده لرئ.نوبغيرد ضرر رسولونه دوى جلا كړئ.په دې آيت كي مطلقاً د رجعت ذكردې.چه ښځې د رضا اوعدم رضا بيان په كي نشته.ددې امله د رجعت حكم مطلق پريښولې (پريخودې) شو.

وَلَابُدَّ مِنْ قِيَامِ الْعِدَّةِ اود عدت موجود كيدل ضرورى دى لِأَنَّ الرَّجْعَةَ اسْتِدَامَةُ الْمِلْكِ ځكه چې درجعت معنى ملك برقرار ساتل دى أَلَا تَرَى أَنَّهُ سُمِّيَ إِمْسَاكًا آيا نه ګورې.چه ددې نوم امساك ايخودې شوې دې وَهُوَ الْإِبْقَاءُ او امساك پاته ساتل دى وَإِنَّمَا يَتَحَقَّقُ الِاسْتِدَامَةُ فِي الْعِدَّةِ او برابر پاته ساتل خو په عدت كي كيداې شى لِأَنَّهُ لَا مِلْكَ بَعْدَ انْقِضَائِهَا ځكه چې د عدت تيريدلو نه روسته ملك نكاح نه پاتې كيږى .

حل اللغة: ① استدامة: هميشوالې ② الابقاء:پاته پاتې كول]

تشريح:- اودرجعت لپاره د عدت وجود ضرورى نه دې.دليل دا دې.چه رجعت نوم دې د ملك نكاح پاته پريخودل،تاسوګورئ چې په قرآن كريم كي د رجعت معنى امساك راغلې ده.اودامساك معنى ده.پاته پريخودل،اوملك نكاح برابرپه ملك كي پاته ساتل په عدت كي كيداې شى .ځكه چې دعدت تيريدو نه روسته ملك نكاح پاته نه پاتې كيږى .نوپاته پاتې كول به څنګه اوشى .نوچه عدت پوره شى .نومحل دامساك پاته پاتې نشو.

## قولى اوفعلى رجوع

وَالرَّجْعَةُ أَنْ يَقُولَ رَاجَعْتُكِ أَوْ رَاجَعْتُ امْرَأَتِي او رجعت دادې.چه ښځې ته خطاب اوكړى .او دا اووائى .چه ما تاسره رجعت اوكړو.ياد خلګو په وړاندې اووائى .چه ما خپلې ښځې سره رجعت اوكړو

تشريح:- رجعت دا دې.چه خپلې ښځې ته خطاب كوى .اوورته اووائى .چه ماتاته رجوع اوكړله.يا ګواهان مخاطب كړى .اوورته اووائى .چه ماخپلې ښځې ته رجوع اوكړله.برابره ده كه دغه ښځه په دغه وخت كي موجوده وى اوكه يا ورته څوك خبر وركړى .

وَهَذَا صَرِيحٌ فِي الرَّجْعَةِ اود رجعت په مسئله كي دا صريح لفظ دې وَلَا خِلَافَ فِيهِ بَيْنَ الْأَئِمَّةِ په دې كي د څلور واړه امامانو په منځ كي هيڅ اختلاف نشته

تشريح:- اودا طريقه په رجعت كي صريح ده.اوپه څلورو واړو امامانوكي په دې مسئله كي څه اختلاف نشته.

اوقول صحيح دا دې.چه دچا په نيزهم ګواه شرط نه دې.البته د ګواه مقرر كولوفائده دا ده.كه ښځه دا دعوى اوكړى .چه ده ماته رجوع نه ده كړې.نوداسړې د ګواهانوپه ذريعه دا ثابتولې شى .الحاصل دا رجعت دا قول بغيراختلافه صريحى دې.

قَالَ أَوْ يَطَأَهَا أَوْ يُقَبِّلَهَا أَوْ يَلْمِسَهَا بِشَهْوَةٍ أَوْ يَنْظُرَ إِلَى فَرْجِهَا بِشَهْوَةٍ يا ددې سره صحبت اوكړى .يا ددې نه كوكئ واخلى .يا

په شهوت سره دې ته لاس يوسي .يا ددې شرمګاه اړخ ته په شهوت سره اوګوري وَهٰذَا عِنْدَنَا دا حکم زموږ په نيز دې

حل اللغة* ① يطاء: وطی کوی ② يقبل: ښکلوی ③ يلمس: مس کوی ]

تشريح:- درجعت عملي صورت دا دې. چې دې ښځې سره وطی اوکړي .يا ني ښکل کړي .يا دې ښځې ته په شهوت سره لاس وراوړي .يا ني مس کړي .يا په شهوت سره ددې شرمګاه ته اوګوري .يعني دننه ګول خائې ته،اوعلامه عيني د ښکلولو سره هم د شهوت قيد لګولې دې.په مبسوط ،ذخير او لنډيز کي خو ني دا قيد په صراحت سره ذکر کړې دې.شيخ محقق ابن همام رحمه الله فرمائيلي دی .چه فعل هم د رجعت دليل دې.خورجعت به په داسې افعالوسره کيږي .کوم چې دنکاح سره خاص وی .په دې کي دا دليل مفيد دې.چه په ښکلولوکي دشهوت قيد نه دی لګول پکار،لکه څنګه چې د کتاب په عبارت کي ښکاره ده.څکه چې مچی کول مطلقاً داسې فعل دې.چه دنکاح سره خاص دې.په خلاف د مس کولواوکتلو،څکه چې دا کارونه د نکاح سره خاص نه دی .البته په هغه صورت کي چې په شهوت سره وی .

ⓐاومقعد يعنی د غټ اودس ماتی خائې ته نظرکول دامام ابوحنيفه رحمه الله اوامام محمد رحمه الله په نيزدقياس مطابق رجعت نه دې.اودا هم معلومول پکار دی .چه مچی کول لاس اوړل شرمګاه ته نظرکول که د سړي دارخه وی اوکه د ښځې بغيرد څه توپير نه په هريورجعت ثابتيږي .خوپه دې شرط چې دښځې د اړخه د شهوت د نظرسړي ته هم پته وی .اوهغه دا منع نکړي .بلکه چوپ پاتې شي .نوپه دې صورت کي اتفاق دې.لکه څنګه چې په لنډيز وغيره کي ددې تصريح ده.

ⓐاوکه دښځې دارخه وی .مثلاً چې دې د سړي په داسې حالت کي ښکل کړلو.چه هغه ويده (اوده) وو.يا ني په شهوت سره سړي ته لاس وراوړلو.يا ني هغه اړخ ته اوکتل،يائې د ويخې په حالت کي دهغه نه ناڅاپه په شهوت سره کوکئ واخستله.يا ني په زرو سره داسې اوکړلو.نوشيخ الاسلام اوشمس الائمه رحمه الله ذکرکړی دی .چه دامام ابوحنيفه اوامام محمد رحمه الله په نيز رجعت ثابتيږي .خود امام ابويوسف رحمه الله په دې کي اختلاف دې.

ⓐاوکه سړي ويده (اوده) وی .يا ښځې په زور سره دهغه عضوتناسل په خپله شرمګاه کي ورداخل کړلو.نوپه اتفاق سره به رجعت ثابت شي .بيا دا پيژندل پکار دی .که د شهوت په وجود اوعدم وجود دواړو کي اختلاف شي .نوچونکه دا شهوت يوه پټه خبره ده.نوپه دې باندې ګواه نشی قبلولې.لکه څنګه چې په لنډيز کي دی .خوکه د شهوت د وجود ني اقرار کړې وی .اوددې ګواهان موجود وی .نود هغوی ګواهی به مقبوله وی .فاحفظه لنډيز دا شوه.چه په دې ټولوصورتونوکي رجعت ثابتيږي .﴿وهذا عندنا﴾ اودا حکم زموږ په نيز دې.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحْمَةُ اللّٰهِ تَعَالٰى عَلَيْهِ: لَا تَصِحُّ الرَّجْعَةُ إِلَّا بِالْقَوْلِ مَعَ الْقُدْرَةِ عَلَيْهِ او امام شافعي رحمه الله فرمائيلي دی .که د ونيلو ده ته قدرت وی .نو په ژبه ونيلو نه بغير رجعت نشی کيدي لِأَنَّ الرَّجْعَةَ بِمَنْزِلَةِ ابْتِدَاءِ النِّكَاحِ څکه چې رجعت د ابتدائی نکاح په حکم کي دې حَتّٰى يَحْرُمَ وَطْؤُهَا تردې چې ددې ښځې سره صحبت کول هم حرام دی

تشريح:- امام شافعي رحمه الله فرمائی .که سړي په ژبه باندې ونيلې شي .نوبغيرد کاوه نه صرف په حرکت سره رجعت نه ثابتيږي .البته د ګونګاه رجعت کوم چې په اشاره سره وی .نوهغه صحيح دې.دليل دا دې چې رجعت کول خوبيخی د نوې نکاح په حکم کي دې.څکه ددې نه وړاندې وطی کول حرامه ده.ترڅوچه ني رجعت نه وی کړې.

ⓐځواب دا دې.چه مؤمن خو حرام کارنه کوی .نودې به وطی ولې کوی .چه دې په رجعت سره ښځه حلالولې شی .ددې امله وطی د رجعت دليل شو.اورجعت نوې نکاح نه ده.څکه چې په نکاح کي شهادت شرط دې.اوپه دې رجعت کي شهادت شرط نه دې.دغه ډول په دې کښې نوې مهرلازم نه دې.نود وطی حرمت خود طلاق د امله دې.ترهغه وخته پورې چې ترڅو ني دې ته د پوره رجعت اراده نه وی کړې.



وَعِنْدَنَا هُوَ اسْتِدَامَةُ النِّكَاحِ عَلٰى مَا بَيَّنَّاهُ او زموږ په نيز د رجعت معنی ده.د نکاح تعلق برقرار ساتل.لکه چې ددې نه مخکې هم موږ بيان کړی دی وَسَنُقَرِّرُهُ إِنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالٰى او روسته به نور هم ددې بيان اوکړو

تشريح:- زموږ په نيزد رجعت معنی ده.نکاح د وړاندې پشان پاته ساتل.لکه څنګه چې موږ وړاندې بيان کړی دی .اوروستوبه هم انشاء الله ددې وضاحت اوکړو.

ⓐاودامام شافعي رحمه الله د قول موافقت ابوثوراوظاهريؤ کړې دې.اوزمونږ مذهب دحضرت سعيد بن مسيب، حسن بصری ،ابن سيرين وغيره اوتابعينواوتبع تابعينو اوامام اوزاعی اوثوری وغيره فقهاؤ رحمهم الله قول دې.ابن المنذر رحمه الله دا خبره بيان کړې ده.

ⓐښکاره دې وی .که دا ني اوونيل.چه څنګه ته زما ښځه وې.هم هغه شان ني.ياته زما ښځه ني.که په دې وينا سره ني د رجعت نه کنايه کړې وی .نودا کنانی رجعت دې.(الذخيرة) اوامام مالك اواسحاق رحمهما الله فرمائيلي دی .که په وطی کولوباندې ني د رجعت اراده وی .نودا رجعت دی.

وَالْفِعْلُ قَدْ يَقَعُ دَلَالَةً عَلَى الْاِسْتِدَامَةِ كَمَا فِي إِسْقَاطِ الْخِيَارِ او فعل کله برابر پاته ساتلو باندې دليل واقع کيږي .لکه څنګه چې په اختيار ساقطولوکي کيږي

حل اللغة* ① اسقاط: ساقطول]

تشريح:- د انسان يوکارکه د هميشه پاته پاتې کيدودليل وی .لکه دخيارساقط کولوکي ،مثلاً يوکس يو اس په دې شرط باندې واخستله.چه درې ورځوپورې ماته د واپس کولواختياردې.اوبيا په هغې باندې سور شو.اوروان شو.نودده داسې عمل کول ددغه اختيارساقط کولودليل دې.اودا بيع به هميشه لپاره لازم وی .يا ني يوه وينځه په دې شرط باندې خرڅه کړه.چه ماته به درې ورځوپورې ددې خبرې اختيار وی .چه دا به واپس راغلو.ددې نه روسته هم په دغه موده کي ورسره ده صحبت اوکړلو.نودا بيع ختمه شوه.اواصلی حالت ته راغلو.

ⓐنودا خبره ښکاره شوه.چه هرکله د رجعت معنی دا ده.چه د نکاح موجوده حالت د پخوانی حالت پشان پاته پريخودل.اوموږ دا اوکتل.چه شريعت هم دا کارونه ددې معنی لپاره دليل مقرر کړې دې.نوپه دې باندې دا خبره ثابته شوه.چه په دې افعالوسره رجعت صحيح دې.

وَالدَّلَالَةُ فِعْلٌ يَخْتَصُّ بِالنِّكَاحِ اود فعل رجعت لپاره دليل کيدل په داسې فعل سره کيږي .چه دنکاح سره مخصوص وی ،وَهٰذِهِ الْأَفَاعِيلُ تَخْتَصُّ بِهِ خُصُوصًا فِي الْحُرَّةِ او اوس بيان شو.چه افعال نکاح سره مخصوص دی .په خاص طور د آزادې ښځې په اړه کښې

تشريح:- په فعل اوعمل سره د رجعت دصحيح کيدو لپاره دا ضروری ده.چه هغه فعل داسې وی .چه هغه دنکاح يا ښځې خاوند سره خاص وی .

ⓐيعنی هرفعل د رجعت دليل نه دې.بلکه صرف هغه فعل به دليل وی .کوم چې د نکاح نه روسته جائزکيږي .دغه ډول دا دليل شو.چه دې کس خپل پخوانې دنکاح تعلق پاته اوساتل،دې ته رجعت وائی .

ⓐوهذه الأفاعيل تختص به خصوصا في حق الحرة بخلاف المس والنظربغيرشهوة...الخ دا ذکرشوی افعال يعنی په شهوت سره دشرمګاه دننه برخې ته کتل،ښځې ته لاس وراوړل،اوښکلول،واړه داسې افعال دی .چه د نکاح نه روسته جائز کيږي .اودنکاح سره مخصوص دی .يعنی صرف په نکاح سره دا کارونه جائزکيږي .خوپه دې شرط چې په شهوت سره وی .

ⓐخصوصا الخ خاص کرد آزادې ښځې په حق کي ،چه هغه خودنکاح نه بغيره په هيڅ صورت کي نه حلاليږي .په خلاف د وينځې څکه چې هغه کله د مملوکيت په وجه حلاليږي .خودا معلوميدل پکار دی .چه هغه د ملك په حلالوالی باندې دليل خامخا دې.چه دا په آزاد يا منکوحه يا وينځه کي دليل دملك نکاح

دي.په دې شرط چې په شهوت سره زې .

بِخِلَافِ الْمَسِّ ،په خلاف د لاس لګولو وَالنَّظَرِ بِغَيْرِ شَهْوَةٍاو د شهوت نه بغیر شرمګاه ارخ ته د کتلو لِأَنَّهُ قَدْ يَحِلُّ
بِدُونِ النِّكَاحِ كَمَا فِي الْقَابِلَةِ وَالطَّبِيبِ وَغَيْرِهِمَا خکه چې کله خودا د نکاح نه بغیر هم جائز کېږی .لکه د
دینړې او حکیم معالج وغیره لپاره حلال وی

تشریح:- دشهوت نه بغیرد کتلواومس کولو،خکه چې د شهوت نه بغیرمس کول اوکتل کله د نکاح نه بغیر هم
جائزوی .لکه په داینړه لپاره اود طبیب دپاره،اوځه داسې نوروکسانودپاره،لکه د سفر په حالت کې ښخه په
سپرلۍ باندې سورول،اود زنا ګواه. لنډیز دا چې مونږ د کتلواومس کولوسره د شهوت قید ددې امله
اولګولو.چه بغیرشهوه مس کول اوکتل کله دطبیب وغیره لپاره جائزوی .خوپه شهوت سره به هله جائزوی
.چه نکاح شوې وی .بله دا چې د کتلونه د شرمګاه دننه برخه مراد ده.او سربېره برخه مراد نه ده.

وَالنَّظَرُ إِلَى غَيْرِ الْفَرْجِاود شرمګاه نه علاوه نور اندامونو ته کتل قَدْ يَقَعُ بَيْنَ الْمُسَاكِنَيْنِ کله په یوخانې کې
اوسیدونکو کې هم موندلې شی وَالزَّوْجُ يُسَاكِنُهَا فِي الْعِدَّةِاو خاوند هم د عدت په ورخو کې دې سره اوسیږی
فَلَوْ كَانَ رَجْعَةً لَطَلَّقَهَانوکه د شهوت نه بغیر ئې بل خانې ته کتل هم رجعت شی .بیادې ته طلاق ورکوی
فَتَطُولُ الْعِدَّةُ عَلَيْهَانود داسې ښخې په حق کې به عدت ډیراوږد شی .

حل اللغة* ① تطول: اوږده شوه]

تشریح:- دفرج نه سوا بل خانې ته کتل اکثرپه هغه کسانوکښې کېږی .چه یوخانې اوسیږی .اودعدت په موده
کې خاوند هم دې سره اوسیږی .نوکه د شهوت نه بغیرنورخایونوته په کتلوسره هم رجعت ثابت شی .نوددې
خاوند به ورته په خصوصیت سره طلاق ورکوی .خکه چې ده خودښخې دجدا کولوپخه اراده کړې ده.اودلته
کې چې دا رجعت ثابت شی .نودا په غیراختیاری طریقه باندې شوې دې.نوخکه به ورته بیا طلاق ورکوی .
﴿فيطول العدة..الخ﴾ په دې طریقه به دښخې عدت اوږدیږی .حالانکه الله تعالی ددې نه منع کړې ده.اوپه
ښکلې طریقه د رخصت کولوحکم ئې کړې دې.ددې نه معلومه شوه.چه د شهوت نه بغیراودشرمګاه نه علاوه
نورخایونه مس کول اوهغې ته په نظرکولوسره رجعت نه ثابتیږی .شیخ محقق رحمه الله فرمائیلی دی .که دښخې
مقعد ته ئې اوکتل.نورجعت نه ثابتیږی .په زیادات کې ئې دا مسئله په صراحت سره ذکرکړې ده.
اوکه هم په دې مقعدکې ئې وطی اوکړله.نوقدوری اشاره کړې ده.چه رجعت نه ثابتیږی .خود رجعت په
کیدوباندې فتوی ده.خکه چې په دې حرکت کې د شهوت سره سره لاس لګول اونورشیان (ځیزونه ) هم شته.
اود لیونی رجعت په فعل سره هم کېږی .دهغه په ژبه سره د وینا اعتبارنشته.که خاوند دخلوت نه روسته
طلاق ورکړلو.اووئې وئیل.چه ما دې سره صحبت کړې دې.خوښخې انکاراوکړلو.نوخاوندته دې ته د رجعت
کاوه اختیارشته.اودصحبت نه بغیربه نه وی .رجعت په څه ځیزپورې معلق کول،مثلاً که فلانې کس
راغلو.نوما ورته رجعت کړې دې.نودا شرط صحیح نه دې.دغه ډول راتلونکې زمانې ته نسبت کول هم
صحیح نه دی .

## په رجوع باندې دوې [دوه] ګواهان قائمول

قَالَ قدوری رحمه الله وائی وَيُسْتَحَبُّ أَنْ يُشْهِدَ عَلَى الرَّجْعَةِ شَاهِدَيْنِاو مستحب دی .چه په رجعت باندې دوې
[دوه] ګواهان جوړکړی فَإِنْ لَمْ يُشْهِدْنوکه ګواهان ئې مقررنکړل صَحَّتِ الرَّجْعَةُنو بیاهم رجعت صحیح دې

تشریح:- صاحب دقدوری رحمه الله فرمائی .① چه زمونږ په نیزپه رجعت باندې دوې [دوه] ګواهان قائمول مستحب
دی .یعنی چې دې مسلمانانوسړو ته اووائی .چه تاسوګواه شئ.چه ماخپلې بی بی ته رجوع اوکړله.اوکه
ګواهان جوړ نکړی .نوهم رجعت ثابتیږی .

قَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللَّهُ فِي أَحَدِ قَوْلَيْهِ لَا تَصِحُّاو امام شافعی رحمه الله په خپلو دوې [دوه] قولونوکې په یوکې فرمائی



چه صحیح نه دی وَهُوَ قَوْلُ مَالِكٍ رَحِمَهُ اللَّهُاودا د امام مالک رحمه الله قول دې ،لِقَوْلِهِ تَعَالَى ﴿وَأَشْهِدُوا ذَوَيْ عَدْلٍ مِنْكُمْ
﴾ وَالْأَمْرُ لِلْإِيجَابِد الله تعالی دقول ((وَأَشْهِدُوا ذَوَيْ عَدْلٍ مِنْكُمْ)) په وجه.یعنی تاسو خلګ خپلوکې دوې [دوه]
عادلان ګواه کړئ.او امر د ایجاب لپاره دې

تشریح:- اودامام شافعی رحمه الله په نیزبغیرد دوو ګواهانونه رجعت نه ثابتیږی .اوهم دا دامام مالک رحمه الله
قول دې.صاحب دفتح القدیربیان کړې دې.چه دمالکیانوپه کتابونوکې ذکردی .چه بغیرد دووګواهانونه هم
رجعت صحیح کېږی .خوګواهان جوړول مستحب دې .دغه ډول په شرح طحاوی کښې هم دی .نوصاحب
دهدایه رحمه الله چې کوم قول ذکر کړې دې.دا د امام مالک رحمه الله نه یوروایت دې.
﴿حاصل دا چې دامام شافعی په نیزاودامام مالک رحمه الله نه د یوروایت مطابق درجعت لپاره شهادت واجب
دې.خوددې روایت مطابق په امام مالک رحمه الله باندې تعجب دې.چه په نکاح کې شهادت شرط نه ګرخوی
اوپه رجعت کې ئې شرط ګرخوی .(عینی شرح هدایه)
﴿ددې دواړوحضراتوپه نیزدرجعت لپاره د ګواهانوپه وجوب باندې آیت ((أَمْرًا۞ فَإِذَا بَلَغْنَ أَجَلَهُنَّ فَأَمْسِكُوهُنَّ بِمَعْرُوفٍ
أَوْ فَارِقُوهُنَّ بِمَعْرُوفٍ وَأَشْهِدُوا ذَوَيْ عَدْلٍ مِنْكُمْ)) دې.یعنی کله چې ددوی دعدت وخت ختمیدوته نزدې شی .نودوی
ایسارې کړئ بغیرد تکلیف رسولو،اویا دوی جلا کړئ بغیرتکلیف رسولو،اودخپل خان نه دوې [دوه]
عادلان ګواهان قائم کړئ.نوپه آیت کې د ﴿وَأَشْهِدُوا﴾ صیغه امردې.اودامر موجب وجوب دې.نوخکه په
رجعت کې ګواهان مقررکول واجب دی .

وَلَنَا إِطْلَاقُ النُّصُوصِ عَنْ قَيْدِ الْإِشْهَادِاو زمونږ دلیل په قیداشهاد سره د نصوص مطلق کیدل دی وَلِأَنَّهُ اسْتِدَامَةٌ
لِلنِّكَاحِاو خکه چې رجعت د نکاح د بقاء نوم دې «وَالشَّهَادَةُ لَيْسَتْ شَرْطًا فِيهِ فِي حَالَةِ الْبَقَاءِ كَمَا فِي الْفَيْءِ فِي
الْإِيلَاءِاو په نکاح کې د بقاء په حالت کې شهادت شرط نه دې.لکه څنګه چې په ایلاء کې په رجوع کولوکې
به ګواه کول شرط نه دی ) إِلَّا أَنَّهَا تُسْتَحَبُّ لِزِيَادَةِ الِاحْتِيَاطِمګردا چې شهادت مستحب دې.د زیات احتیاط په
وجه كَيْ لَا يَجْرِي التَّنَاكُرُ فِيهَا چې په رجعت کې انکار جاری نشی

حل اللغة* ① التناكر:انکارکول ]

تشریح:-زمونږدلیل دا دې.چه درجعت په اړه کې چې څومره نصوص منقول دی .هغه واړه د ګواهانو مقرر کولو
نه خالی دی .مثلاً ① ((فَأَمْسِكُوهُنَّ بِمَعْرُوفٍ)) ② اَلطَّلَاقُ مَرَّتَانِ فَإِمْسَاكٌ بِمَعْرُوفٍ أَوْ تَسْرِيحٌ بِإِحْسَانٍ ② ((وَبُعُولَتُهُنَّ أَحَقُّ
بِرَدِّهِنَّ)) ③ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا أَنْ يَتَرَاجَعَا
اونبی ④ فرمائیلی دی .﴿مر ابنك فليراجعها﴾ اوکه په رجعت باندې دشهادت د وجوب اضافه اوشو.نوپه
دې دې نصوص مطلقو کې به زیادت راشی .اودا جائزنه دی .
﴿عقلی دلیل دا دې.چه رجعت د نکاح پاتـه کولونوم دې.اودنکاح پاتـه ساتلو لپاره شهادت شرط نه
دې.نودرجعت لپاره به هم شهادت شرط نه وی .لکه څنګه چې په ایلاء کولوکې شهادت شرط نه دې.خکه
چې دا هم د نکاح دحالت پاته والې دې.البته د زیادت احتیاط لپاره په رجعت کې شهادت مستحب دې.چه
دعدت تیریدونه روسته د لاعلمئ د امله په خلګ وکې بدګمانی پیدا نشی .چه فلانی خپلې ښخې ته طلاق
ورکړې وو.اوبیا د عدت تیریدونه روسته ئې هم خان سره ساتی .

وَمَا تَلَاهُ مَحْمُولٌ عَلَيْهِاو امام شافعی رحمه الله چې کوم آیت تلاوت کړې دې.هغه هم په دې باندې محمول دې أَلَا تَرَى
أَنَّهُ قَرَنَهَا بِالْمُفَارَقَةِ وَهُوَ فِيهَا مُسْتَحَبٌّ آیا نه ګورې،چه شهادت ئې مفارقت سره ملاؤ کړې دې.حالانکه په مفارقت
کې ګواهان جوړول مستحب دی

**تشريح:-** پاتې شوهغه آيت کوم چې امام شافعي رحمه الله په دليل کې پيش کړې دې.نوهغه هم په استحباب باندې محمول دې.دليل دا دې.چه الله تعالى شهادت د بيلتون سره ملاؤ کړې دې.اوذکرکړې دې.فرمائيلي ((أَوْ فَارِقُوهُنَّ بِمَعْرُوفٍ وَأَشْهِدُوا ذَوَيْ عَدْلٍ مِنْكُمْ)) نې دی .اوپه مفارقت کې شهادت په اتفاق سره مستحب دې.نوځکه به په رجعت اوامساك کې هم شهادت مستحب وی .

**وَيُسْتَحَبُّ أَنْ يُعْلِمَهَا كَيْ لَا تَقَعَ فِي الْمَعْصِيَةِ** او مستحب دی .چه ښځه خبرکړی .چه دا په معصيت کې اخته نشی .

**تشريح:-** صاحب دهدايه رحمه الله فرمائيلي دی .چه ښځې ته د رجعت خبر ورکول هم مستحب دی .چه دا په معصيت کې اخته نشی .ځکه چې کله کله ښځه دا ګنړی .چه زما خاوند رجعت نه دې کړې.اوعدت تيرشوې دې.نوهغه د بل خاوند سره نکاح اوکړی .نوپه دې صورت کې به ښځه ګناهګاره وی .خوددې باوجود که ښځې ته خبرورنکړې شی .نوهم رجعت صحيح دې.

## دعدت تيريدونه روسته په عدت کې د رجوع کولوحکم

**وَإِذَا انْقَضَتِ الْعِدَّةُ** اوکه عدت تير شو **فَقَالَ كُنْتُ رَاجَعْتُهَا فِي الْعِدَّةِ** نوسړی اووئيل.ما ددې په عدت کې رجوع کړې وه **فَصَدَّقَتْهُ** نو ښځې ددې تصديق اوکړو **فَهِيَ رَجْعَةٌ** نودا رجعت دې **وَإِنْ كَذَّبَتْهُ** اوکه ښځې ددې تکذيب اوکړو **فَالْقَوْلُ قَوْلُهَا** نود ښځې قول به (معتبر) وی **لِأَنَّهُ أَخْبَرَ عَمَّا لَا يَمْلِكُ إِنْشَاءَهُ فِي الْحَالِ** ځکه چې خاوند دې ته دداسې شی خبرورکړې دې.چه دهغې دا في الحال مالکه نه ده **فَكَانَ مُتَّهَمًا** که هغه دا ( پيداکول اوغواړی .نو متهم به شی **إِلَّا أَنَّ بِالتَّصْدِيقِ تَرْتَفِعُ التُّهْمَةُ** خو( د ښځې په تصديق کولوسره به تهمت مرتفع کيږی **وَلَا يَمِينَ عَلَيْهَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ** اود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز په ښځه باندې قسم نشته **وَهِيَ مَسْأَلَةُ الِاسْتِحْلَافِ فِي الْأَشْيَاءِ السِّتَّةِ** اوپه شپږ ځيزونوکې دا مسئله د استحلاف ده

**تشريح:-** مسئله دا ده.که خاوند ښځې ته اووئيل.چه ماتاته په عدت کې رجوع کړې وه.اوښځې نې تصديق اوکړلو.نودا رجعت دې.اوکه ښځې نې تکذيب اوکړلو.نودهغې قول به معتبر وی .ځکه چې خاوند دداسې ځيزدعوی اوکړله.چه دې هغه في الحال پيدا کولې نشی .نودې به په هغې کښې متهم وی .اوچه په کوم صورت کې نې ښځه تصديق اوکړی .نوپه هغه صورت کې چونکه په ده باندې تهمت نشته.نوځکه نې قول معتبردې.

**وَقَدْ مَرَّ فِي كِتَابِ النِّكَاحِ** او په کتاب النکاح کې تيره شوه.

**تشريح:-** صاحب دهدايه رحمه الله فرمائي .چه ﴿وقد مر في كتاب النكاح﴾ حالانکه په کتاب النکاح کې دا مسئله نه ده تيره شوې.بلکه په دعوی د سکوت على البکرکې نې صرف دومره وئيلي دی .چه ﴿فلا يمين عليها عندأبي حنيفة رحمه الله وهي مسئلة الإستخلاف في الأشياء الستة﴾ بيا نې فرمائيلي دی .﴿ وسياتيك في الدعوى﴾ اوداسې بيان ته :ا نشی وئيلې.چه دا مسئله تيره شوې ده.ځکه چې هلته د رجعت هډوذکرنشته.والله اعلم بالصواب.

## د سړی د رجوع اوددښځې دعدت تيريدودعوی کول

**وَإِذَا قَالَ الزَّوْجُ قَدْ رَاجَعْتُكِ** اوکه خاوند اووئيل.چه ما تاسره رجعت کړې دې **فَقَالَتْ مُجِيبَةً لَهُ** نوښځې ده په خواب ور کاوه کې اوفرمائيل **قَدِ انْقَضَتْ عِدَّتِي** چې زما عدت خو تيرشوې دې **لَمْ تَصِحَّ الرَّجْعَةُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ** (۱) د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز رجعت صحيح نه دې

---

(۱) القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في الهندية (۱\۴۷۰) وفتح القدير(۴\۱۶۰) والدرالمختار(۲\۵۷۷) نقلاً عن القول الراجح (۲)—



**تشريح:-** صورت دمسئلې دا دې.چه خاوند خپلې ښځې ته اووئيل.ماتاته په عدت کې رجوع کړې ده.اوښځې ورته دستی اووئيل.زما خوعدت تيرشوې هم دې.① نودامام ابوحنيفه رحمه الله په نيزرجعت نه ثابتيږی .دا دامام شافعي اوامام احمد رحمه الله قول هم دې

**وَقَالَا: تَصِحُّ الرَّجْعَةُ** او صاحبين رحمهما الله فرمائي .چه صحيح دې **لِأَنَّهَا صَادَفَتِ الْعِدَّةَ** ځکه چې رجعت عدت بيامونده **إِذْ هِيَ بَاقِيَةٌ ظَاهِرًا إِلَى أَنْ تُخْبِرَ** ځکه چې په ښکاره عدت پاته دې.تردې چې ښځه ( دعدت تيريدو) خبر ورکړی **وَقَدْ سَبَقَتْهُ الرَّجْعَةُ** او رجعت د خبر ور کاوه نه وړاندې دې **وَلِهَذَا لَوْ قَالَ لَهَا** اوهم په دې وجه که خاوند خپلې ښځې ته اووئيل **طَلَّقْتُكِ** ما تا له طلاق درکړې دې **فَقَالَتْ مُجِيبَةً لَهُ** نو ښځې ده ته په ځواب کې اووئيل **قَدِ انْقَضَتْ عِدَّتِي** چې زما عدت تيرشوې دې **يَقَعُ الطَّلَاقُ** نو طلاق به واقع وی

**تشريح:-** اوصاحبينو رحمهما الله فرمائيلي دی .چه رجعت صحيح کيږی . دليل دا دې.چه رجعت د عدت په زمانه کې موجود شوې دې.ځکه چې په استصحاب حال باندې عمل کولوباندې په ظاهره عدت پاته دې.ترڅوچه دې دعدت تيريدوخبرنه وی ورکړې.نومعلومه شوه.چه د رجعت قول وړاندې دې.اود عدت تيريدو قول روستودې.اودعدت په زمانه کې رجعت کول صحيح دی .ددې امله موږ وايو.چه رجعت صحيح دې.اوچونکه درجعت قول د عدت ختميدود قول نه وړاندې دې.ددې امله که خاوند خپلې ښځې ته اووئيل.چه ما تاته طلاق درکړې دې.اوښځې ورته اووئيل.چه زما عدت خوتيرشوې دې.نوپه دې صورت کې طلاق واقع کيږی .ځکه چې طلاق قول دعدت ختميدود خبرور کاوه نه وړاندې واقع شوې دې.

**وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ أَنَّهَا صَادَفَتْ حَالَةَ الِانْقِضَاءِ** اود امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې.چه رجعت د عدت تيريدلو حالت موندلې دې **لِأَنَّهَا أَمِينَةٌ فِي الْإِخْبَارِ عَنِ الِانْقِضَاءِ** ځکه چې ښځه د عدت تيريدلو خبر ورکولوکې امين ده **فَإِذَا أَخْبَرَتْ** نوهرکله چې ښځې خبر ورکړو.( د عدت تيريدلو) **دَلَّ ذَلِكَ عَلَى سَبْقِ الِانْقِضَاءِ** نو دلالت نې اوکړو.چه تيريدل وړاندې شوی دی **وَأَقْرَبُ أَحْوَالِهِ حَالُ قَوْلِ الزَّوْجِ** اود انقضاء په حالاتوکې د ټولو نه زيات نژدې د خاوند د قول حال دې

**حل اللغة:** ① صادفت: مقابله اوکړه ]

**تشريح:-** اودامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې.چه درجعت قول د عدت ختميدونه روسته واقع شوې دې.کوم چې دهغې په رحم کې دې.اوکوم ځيزچه په رحم کې وی .دهغې خبر ورکونکې امين وی .دالله تعالى ارشاد دې ((وَلَا يَحِلُّ لَهُنَّ أَنْ يَكْتُمْنَ مَا خَلَقَ اللهُ فِي أَرْحَامِهِنَّ)) يعنی دښځو لپاره حلال نه دی .چه پټ کړی هغه ځيزکوم چې الله تعالى د دوی په رحمونوکې پيدا کړې دې.بهرحال هرکله چې ښځې دعدت تيريدوخبر ورکړلو.نودا خبرورکول په دې دلالت کوی .چه دعدت تيريدل د خبرورکولونه وړاندې دی .

اوس پاتې شوه دا خبره چې څومره وړاندې دې.نوځواب دا دې.چه د عدت ختميدوپه حالاتوکې دټولونه نژدې د خاوند قول دې.نود ښځې خبرورکول به د خاوند دخبرورکولونه چې ﴿راجعتك﴾ نه وړاندې وی .نوحاصل دا شو.چه عدت وړاندې تيرشوې دې.اورجعت روستو شوې.اوکوم رجعت چې د عدت تيريدونه روسته وی .هغه صحيح نه وی .نوځکه امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائي .چه دا رجعت صحيح نه دې.

**وَمَسْأَلَةُ الطَّلَاقِ عَلَى الْخِلَافِ** اود طلاق مسئله مختلف فيه ده **وَلَوْ كَانَتْ عَلَى الِاتِّفَاقِ** اوکه بالاتفاق ده **فَالطَّلَاقُ يَقَعُ بِإِقْرَارِهِ بَعْدَ الِانْقِضَاءِ** نو طلاق به واقع وی .د انقضاء نه روسته دده په اقرار سره **وَالْمُرَاجَعَةُ لَا تَثْبُتُ بِهِ** او مراجعت په اقرار سره نه ثابتيږی .

**تشريح:-** اوپه ﴿ومسئلة الطلاق﴾ سره دصاحبينو رحمهما الله دقياس نه ځواب ورکوی .دځواب حاصل دا دې.چه د طلاق مسئله هم د رجعت د مسئلې پشان مختلف فيه ده.نوپه دې باندې قياس کول به څنګه صحيح شی .اوکه دا اومنلې شی .چه د طلاق مسئله متفق عليه ده.نوځواب دا دې.چه دعدت تيريدونه روسته به د

خاوند په اقرارباندي طلاق واقع شي .خودعدت نه روسته د خاوند په اقرار باندي رجعت نه ثابتيږي .ځكه چي په دې كي دبل په حق كي دتصرف كولوتهمت پيدا كيږي .نومعلومه شوه.چه په دې دواړومسئلوكي فارق موجود دي.اوقياس مع الفارق صحيح نه وي .نوځكه امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائي .چه دا رجعت صحيح نه دې.

**دعدت تيريدونه روسته د وينځي د خاوند د رجعت دعوى اودمالك تصديق اود وينځي تكذيب**

وَإِذَا قَالَ زَوْجُ الْأَمَةِ بَعْدَ انْقِضَاءِ عِدَّتِهَا او هركله چي د وينځي خاوند ددي د عدت تيريدلو نه روسته اووئيل قَدْ كُنْتُ رَاجَعْتُهَا چي ماديې ته ( په عدت كښې) رجوع كړې ده وَصَدَّقَهُ الْمَوْلَى او مولا ددې تصديق اوكړو وَكَذَّبَتْهُ الْأَمَةُ او وينځي دا دروغ كړله فَالْقَوْلُ قَوْلُهَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ (١) امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به د وينځي قول (معتبر) وي

تشريح:- كه د وينځي خاونددعدت تيريدو نه روسته اووئيل.چه ما تاته په عدت كي رجوع كړې ده.نوددې څلور صورتونه دي .① مولى اووينځه دواړه دده تصديق كوي .② يا ئې دواړه تكذيب كوي .③ مولى ئې تصديق كوي اوينځه ئې تكذيب④مولى ئې تكذيب كوي اوينځه ئې تصديق كوي .Ⓐپه اول صورت كي په اتفاق سره رجعت صحيح دې.اوپه دوهم صورت كي په اتفاق سره رجعت صحيح نه دې.البته دا چي خاوندگواهان پيش كړي .اوپه دريم صورت كي كه د خاوند سره گواهان نه وي . نودامام ابوحنيفه رحمه الله په نيزد وينځي قول معتبردي.اوامام شافعي امام مالك اوامام احمد رحمهم الله هم ددې قائلين دی .

وَقَالَا: الْقَوْلُ قَوْلُ الْمَوْلَى و صاحبين رحمهما الله فرمائي .چه د مولا قول به ( قبول) وي لِأَنَّ بُضْعَهَا مَمْلُوكٌ لَهُ ځكه چي د وينځي بضع د مولا مملوك دي فَقَدْ أَقَرَّ بِمَا هُوَ خَالِصُ حَقِّهِ لِلزَّوْجِ نو مولا د خاوند لپاره دداسې شي اقرار اوكړو.چه دا خالص د مولا مملوك دې فَشَابَهَ الْإِقْرَارَ عَلَيْهَا بِالنِّكَاحِ نو مشابه شو( د مولا) په وينځه باندې د نكاح د اقرار كولو

تشريح:- اودصاحبينو رحمهما الله په نيزد مولى قول معتبردي. دليل دا دي.چه دعدت تيريدونه روسته دبضع منافع د مولى مملوك دی .نود خاوند لپاره د بضع دمنافعواقراركول خالص دخپل حق اقرار كول دی .نودابه نشي رد كولې.اودا داسې شوه.چه دوينځي په نكاح كي د مولى قول معتبردي.يعني چي مولى دا اقراراوكړي .چه ما خپله وينځه فلانی كس ته په نكاح وركړې ده.نوپه دې اقراركي دمولى قول معتبردي.نودغه ډول په دې صورت كي به هم د مولى قول معتبروي .

وَهُوَ يَقُولُ حُكْمُ الرَّجْعَةِ يُبْتَنَى عَلَى الْعِدَّةِ او امام صاحب رحمه الله فرمائي .چه د رجعت حكم په عدت باندي مبنى دې وَالْقَوْلُ فِي الْعِدَّةِ قَوْلُهَا او په عدت كي د ښځي قول ( قبول) وي فَكَذَا فِيمَا يُبْتَنَى عَلَيْهَا نوهم دغه ډول په هغه شي كي چي په عدت باندي مبنى وي

تشريح:-دامام ابوحنيفه رحمه الله په نيزد رجعت حكم د عدت په بقاء اودعدت په تيريدو باندي مبنى دې.(يعنى كه عدت پاته وي .نورجعت به ثابت وي .اوكه عدت پاته نه وي .نورجعت نه ثابتيږي )اودعدت په بقاء اوعدم بقاء كښې دښځي قول معتبردي.نوكوم څيزچه په عدت باندې مبنى وي .يعنى رجعت نوپه هغې كښې به هم د ښځي قول معتبروي .

وَلَوْ كَانَ عَلَى الْقَلْبِ اوكه معامله برعكس شي فَعِنْدَهُمَا الْقَوْلُ قَوْلُ الْمَوْلَى نود صاحبينو رحمهما الله په نيز به د مولا قول( معتبر) وي

(١) القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في الهندية (٤٧١\١) والدرالمختار(٥٧٨\٢) نقلاً عن القول الراجح (٣٤٠\١)-



تشريح:-اوڅلورم صورت دا دې.دكوم چي مصنف رحمه الله په «ولو كان على القلب» سره تعبيركړې دې.يعني چي وينځې د خاوند تصديق اوكړلو.اومولى ئې تكذيب اوكړلو.نوپه دې صورت كي دصاحبينو رحمهما الله په نيز د مولى قول معتبردې.دليل دا چي دبضع منافع دمولى حق دي.اوخاوندپه مولى باندې ددې مدعى دې. اوصورت د مسئلې دا دې.چه دمدعى سره گواهان موجود نه دی .نودمنكر يعنى مولى قول به معتبروی .

وَكَذَا عِنْدَهُ فِي الصَّحِيحِ اوهم د غه شان د امام صاحب رحمه الله په نيز په صحيح روايت كي لِأَنَّهَا مُنْقَضِيَةُ الْعِدَّةِ فِي الْحَالِ ځكه چي وينځه في الحال دعدت پوره كونكي ده ،وَقَدْ ظَهَرَ مِلْكُ الْمُتْعَةِ لِلْمَوْلَى اود مولا لپاره ملك متعه ښكاره شوې ده فَلَا يُقْبَلُ قَوْلُهَا فِي إِبْطَالِهِ نود وينځي قول په د مولا (حق) باطلولوكي نشی قبلولې

تشريح:-اودامام ابوحنيفه رحمه الله نه هم صحيح روايت دا دې.چه دمولى قول معتبردي.دليل دا دې.چه في الحال دا وينځه په داسې حالت كي ده.چه د عدت ورځې تيرې شوې دی .اود وينځي نه د مولى لپاره د فائدې حاصلولو لپاره د ملك په ظاهره ثابت شوې دې.نوكه د وينځې اوډهغې د خاوند په اقرارسره رجعت ثابت كړې شي .نودمولى ملك تمتع به باطل شي .حالانكه صرف ديوكس په اقراركولوسره دبل چا حق نه باطليږی .نودلته به هم د وينځي قول د مولى دحق باطلولود امله قابل قبول نه وی .

بِخِلَافِ الْوَجْهِ الْأَوَّلِ .په خلاف د وړمبئ وجهي لِأَنَّ الْمَوْلَى بِالتَّصْدِيقِ فِي الرَّجْعَةِ مُقِرٌّ بِقِيَامِ الْعِدَّةِ عِنْدَهَا ځكه چي مولا په رجعت كي د تصديق كاوه په وجه درجعت په وختد عدت د وجود اقرار كونكي ده وَلَا يَظْهَرُ مِلْكُهُ مَعَ الْعِدَّةِ اود مولا ملك عدت سره نه ښكاره كيږي .( نو د مولا قول به معتبر نه وی ) وَإِنْ قَالَتْ قَدِ انْقَضَتْ عِدَّتِي اوكه وينځي اووئيل.چه زما عدت تيرشوې دې وَقَالَ الزَّوْجُ وَالْمَوْلَى لَمْ تَنْقَضِ عِدَّتُكِ او خاوند او مولا اووئيل.چه ستا عدت نه دې تيرشوې فَالْقَوْلُ قَوْلُهَا نود وينځي قول به ( معتبر) وی .لِأَنَّهَا أَمِينَةٌ فِي ذَلِكَ ځكه چي وينځه پخپل دې قول « إنقضت عدتي » كي امين ده إِذْ هِيَ الْعَالِمَةُ بِهِ ځكه چي وينځه انقضاء عدت باندې پوهه ده.

تشريح:-په خلاف داولنى صورت يعنى هغه صورت په كوم كي چي مولى د خاوند تصديق كړې وی .اووينځه تكذيب كوی .نودامام ابوحنيفه رحمه الله په نيزپه دې صورت كي د وينځي قول معتبردي.ځكه چي هركله مولى په رجعت كولوكي د خاوند تصديق اوكړلو.نوپه دې سره مولى په دې خبره اقراركونكې شو.چه درجعت په وخت كي عدت موجود وو.اوچه عدت موجود وی .نود مالك لپاره ملك تمتع نه حاصليږی .نوچونكه په دې صورت كي د وينځي د قول قبلولو نه د مولى دحق بطلان نه لازميږی .نوځكه به په دې صورت كي د وينځي قول معتبر وی .دمولى به نه وی .

Ⓑاوكه وينځي اووئيل.چه زما دعدت ورځي تيرې شوی دی .اوورځي دومره وی .چه عدت تيريدل په كي ناممكن وی .او خاوند اومولى اووئيل.چه ستاعدت نه دې تيرشوې.هم به د وينځي قول معتبر وی .ځكه چي دعدت په تيريدوكي وينځه امينه ده.ځكه چي هم وينځې ته دعدت تيريدوعلم كيداې شي .والله اعلم

**درجوع دحق ختميدووخت**

وَإِذَا انْقَطَعَ الدَّمُ مِنَ الْحَيْضَةِ الثَّالِثَةِ لِعَشَرَةِ أَيَّامٍ اوهركله چي د دريم حيض نه وينه بنده شوه.په پوره لس ورځو باندې انْقَطَعَتِ الرَّجْعَةُ وَإِنْ لَمْ تَغْتَسِلْ نو رجعت منقطع شو.كه ښځې غسل اونكړو ، وَإِنِ انْقَطَعَ لِأَقَلَّ مِنْ عَشَرَةِ أَيَّامٍ اود لس ورځو نه په كي ( وينه) منقطع شوې لَمْ تَنْقَطِعِ الرَّجْعَةُ حَتَّى تَغْتَسِلَ نو رجعت به منقطع نه وی .تردې چي ښځه غسل اوكړی أَوْ يَمْضِيَ عَلَيْهَا وَقْتُ صَلَاةٍ كَامِلٍ يا په دې باندې د لمونځ پوره وخت تيرشي

تشريح:- صورت دمسئلې دا دې.چه په پوره لسمه ورځ دحيض وينه ودريدله.نوعدت تيرشو.اگرچه ښځې لاغسل نه وی كړې.اوكه دلسو ورځونه په كمه مودهٔ باندې وينه ودريدله.نوعدت نه ختميږی .تردې چي هغه ښځه غسل اوكړی .اويا پرې د يوكامل لمونځ وخت تيرشي .

لِأَنَّ الْحَيْضَ لَامَزِيدَلَهُ عَلَى الْعَشَرَةِ، ځکه چې د حيض لپاره د لس ورځو نه زياتوالي ( متصور) نه دي فَبِمُجَرَّدِ الْاِنْقِطَاعِ خَرَجَتْ مِنَ الْحَيْضِ نو ( دويني په منقطع كيدو سره ) دا د حيض نه اووتله فَانْقَضَتِ الْعِدَّةُ بيا عدت تير شو وَانْقَطَعَتِ الرَّجْعَةُ او رجعت منقطع شو

تشريح:-دليل دا دي.چه رجعت منقطع كيدل موقوف دى .دعدت په تيريدوپورې.اودعدت تيريدل موقوف دى . ددريم حيض په دريدو پورې.اود دريم حيض تيريدل موقوف دى دطهارت په حاصلولوپورې.نوكه دويني ودريدل په پوره لسمه ورځ وى .نوصرف د وينې په اودريدو به عدت ختميږي .ځكه چې په لسوورځوباندې حيض نه زياتيږي .نوچه څنګه لس ورځې پوره شي .نودوينې په اودريدو به دابنځه د حيض نه فارغه شي .اوددې عدت به هم تيرشي .اود رجعت حكم به هم منقطع شي .برابره ده كه دې ښځې غسل كړې وى اوكه نه.

وَفِيمَا دُونَ الْعَشَرَةِ يُحْتَمَلُ عَوْدُ الدَّمِ اود لس ورځو نه په كم كي احتمال دې.د وينې د واپس راتلو فَلَابُدَّ أَنْ يَعْتَضِدَ الْاِنْقِطَاعُ بِحَقِيقَةِ الْاِغْتِسَالِ نو ضروري شوه.چه د منقطع كيدلو احتمال ته قوت وركړې شي .په حقيقت د اغتسال سره أَوْبِلُزُومِ حُكْمٍ مِنْ أَحْكَامِ الطَّاهِرَاتِ بِمُضِيِّ وَقْتِ الصَّلَاةِ يا د پاكوښځو د ا حكامو څنې څه حكم ( په دې باندې) لازمولو سره دلمونځ وخت تيريدلو په وجه

حل اللغة* ① الاعتضاد:قوت وركول ]

تشريح:-اود لسوورځونه په كمه موده كښې د دريم حيض وينه ودريدله.نوچونكه په دې صورت كې دا احتمال شته.چه وينه بيا راشي .نود وينې اودريدوته دتقويت ور كاوه لپاره حقيقت كښې په غسل كولوسره يا دا چې د پاكوښځود احكامونه يوحكم په دې باندې لازم شي .مثلاً چې په دې باندې د لمونځ كامل وخت تيرشي .نودا ددې په ذمه باندې يو پور شو.ځكه چې دا د پاكوښځوداحكاموڅنى دي.

بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَتْ كِتَابِيَّةً په خلاف ددې چې كله ښځه كتابيه وى لِأَنَّهُ لَا يُتَوَقَّعُ فِي حَقِّهَا أَمَارَةٌ زَائِدَةٌ ځكه چې ددې په حق كي دڅه زياتى علامت اميد نشته فَاكْتُفِيَ بِالْاِنْقِطَاعِ نو ( صرف د وينې ) په منقطع كيدلو باندې اكتفاء اوكړې شوه وَتَنْقَطِعُ إِذَا تَيَمَّمَتْ وَصَلَّتْ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُمَا اللّٰهُ، او ( رجعت) به منقطع كيږي .چه كله تيمم اوكړى .او مونځ اوكړى .د ابوحنيفه او ابويوسف رحمهما الله په نيز وَهٰذَا اسْتِحْسَانٌ اودا استحسان دي

حل اللغة* ① امارة: علامه ، نښانه ]

تشريح:-ددې په خلاف كه ښځه كتابيه (يهوديه يا نصرانيه) وى .اوددې وينه دلسو ورځونه په كمه موده باندې ودريدله.نودغسل كولونه بغيراودلمونځ د وخت تيريدنه بغيرصرف د وينې په اودريدوباندې ددې رجعت منقطع شو.ځكه چې ددې په حق كي د وينې په اودريدو باندې د زياتى نښې توقع نشى كيدې.ځكه چې په كتابيه باندې نه لمونځ واجب دې اونه غسل،نوځكه به صرف د وينې په اودريدوباندې زجعت ثابتيږي .[1] اوكه معتده رجعيه وى .اودلسو ورځونه په كمه موده ددې وينه ودريدله.اودوينې اودريدونه روسته دې تيمم اوكړلو.اولمونځ ئې اوكړلو،فرض يا نفل،نودشيخينو رحمهما الله په نيزرجعت ختم شو.يعنى ختميدل د رجعت به په تيمم او لمونځ دواړو سره وى .اودا حكم استحساناً دي.

وَقَالَ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللّٰهُ: إِذَا تَيَمَّمَتْ او امام محمد رحمه الله فرمائى .چه كله ده تيمم اوكړو انْقَطَعَتْ، (عدت او رجعت) منقطع شو.اودا قياس دي وَهٰذَا قِيَاسٌ نو ( موجوديدلو په حالت كي مطلقاً طهارت دي لِأَنَّ التَّيَمُّمَ حَالَ عَدَمِ الْمَاءِ طَهَارَةٌ مُطْلَقَةٌ ځكه چې تيمم د اوبو نه حَتَّى يَثْبُتَ بِهِ مِنَ الْأَحْكَامِ مَا يَثْبُتُ بِالْاِغْتِسَالِ تردې چې كوم

[1]) القول الراجح هو قول محمد رحمه الله كذا فى فتح القدير (٢٣١٤) والكفاية (٢٣١٤) والدرالمنتقى (٤٣٥١١) ورد المحتار(٥٧٩١٢) [و البحر] الرائق (٥٣١٤) نقلا عن القول الراجح (٣٤٠١١)-



احكام غسل كاوه سره ثابتيږي .په تيمم كاوه سره هم ثابتيږي فَكَانَ بِمَنْزِلَتِهِ نو تيمم كول په مرتبه د غسل كاوه شو

تشريح:- امام محمد رحمه الله فرمائى .كه تيمم اوكړى .نوصرف په تيمم كولوسره رجعت ختم شو.امام زفراوامام احمد رحمهما الله هم ددې قائلين دى .اودا قياس هم دې.دليل دا دې.چه اوبه نه وى .نوتيمم طهارت مطلقه دې.هم دا وجه ده.چه په تيمم باندې هغه واړه احكامات جائز كيږي .كوم چې په غسل باندې جائزكيږي .لكه جمات ته داخليدل،دقرآن پاك تلاوت كول،قرآن ته ګوتې وراوړل،لمونځ كول،سجده دتلاوت كول،نوتيمم دغسل په مرتبه كي شو.نوچه كوم حكم د غسل وو.هم هغه حكم به د تيمم هم وى .

وَلَهُمَا أَنَّهُ مُلَوِّثٌ غَيْرُ مُطَهِّرٍ اود شيخينو رحمهما الله دليل دادې.چه تيمم ملوث كونكې دې.پاكونكې نه دې وَإِنَّمَا اعْتُبِرَ طَهَارَةً ضَرُورَةَ أَنْ لَا تَتَضَاعَفَ الْوَاجِبَاتُ، او په تيمم سره طهارت په دې اړتيا سره معتبرمنلې شوې دې.چه واجبات څو چنده ( زيات) نشى وَهٰذِهِ الضَّرُورَةُ تَتَحَقَّقُ حَالَ أَدَاءِ الصَّلَاةِ لَا فِيمَا قَبْلَهَا مِنَ الْأَوْقَاتِ اودا اړتيا به د لمونځ ادا كاوه په حالت كي متحقق كيږي .ددې نه مخكې وختونوكې نه ( متحقق كيږي )

حل اللغة* ① تتضاعف:دوچنده كيږي ]

تشريح:-اودشخينو رحمهما الله دليل دا دې.چه په حقيقت كي تيمم ككړكونكې دې.خوشريعت د اړتيا په وجه ددې د مطهريت اعتباركړې دې. اړتيا دا دې.كه څو ورځې په اوبوباندې قدرت نه وى .اودشريعت د اړخه دتيمم اجازت هم نه وى .نودده په ذمه به فرائض اوواجبات په څوچنده شي .اودهغې ادا كول به دده لپاره ګران شي .نوددې اړتيا د امله تيمم جائزاوګرځولې شو.او اړتيا ادا كول د لمونځ دى .او اړتيا د لمانځه دوخت په داخليدوسره متحقق كيږي .دهغې نه وړاندې نه،نومعلومه شوه.چه دتيمم نه روسته ئې لمونځ اوكړلو .نو طهارت به حاصل شي .ګنى نه حاصليږي .ددې امله مونږوايو.كه دتيمم نه روسته ئې لمونځ اوكړلو .نو د طهارت دحاصليدو په وجه به درجعت حكم منقطع شي .اوكه لمونځ ئې اونكړلو.نودطهارت دعدم حصول د امله به درجعت حكم نه منقطع كيږي .

وَالْأَحْكَامُ الثَّابِتَةُ أَيْضًا ضَرُورِيَّةٌ اقْتِضَائِيَّةٌ او كوم احكام چې ثابت شوى دى .هغه هم ( دِ مونځ) د مقتضى كيدلو اړتيا سره ثابتيږي

تشريح:- اوبه «والأحكام الثابتة» سره دامام محمد رحمه الله د اصل (چه كوم احكام په غسل سره ثابتيږي .هغه به په تيمم سره هم جائزكيږي )ځواب وركوى .دځواب حاصل دا دې.چه په تيمم باندې ددې احكامو ثبوت د لمونځ ادا كولود اړتيا د امله دې.په لمانځه كي د قرات كول ددې امله اړتيا دى .چه قراءت د لمانځه ركن دې.اودجمات ځكه چې دا د لمانځه ځائې دې.اوسجده دتلاوت ددې امله چې دا د قراءت د توابعوڅنې ده.ځكه چې ممكن ده.چه قارى په لمانځه كي د سجدې د آيت تلاوت اوكړى .اوقران ته د ګوتو وراوړلو اړتيا ددې امله دې.كه په دومره مقدارباندې ئې قراءت نه وى كړې.چه لمونځ پرې جائزكيږي .اوقراءت ترې هيرشي .نودا كس به قرآن راخلى اوبيرته به كوى به ئې .اودقران قراءت ته به محتاج وى .اوښكاره خبره ده.چه دا كارمحصف مس كولونه بغيرنه كيږي .

بعضې حضراتود شيخينو رحمهما الله په دليل باندې اشكال كړې دې.اشكال دا دې.چه تيمم طهارت ضروريه دې.او اړتيا پيښيږي .د لمانځه د وخت په داخليدوباندې،ددې نه وړاندې نه،اودا خبره هم په اصولوكې ثابته شوې ده.چه «الثابت بالضرورة لا يتعدى موضعه» يعنى كوم څيزچه د اړتيا په وجه ثابت شي .نوهغه به دځپل اړتيا د ځائې نه تجاوز نه كوى .نوددې اصولوتقاضا خو دا ده.چه په تيمم سره د رجعت حكم منقطع نشى .اګرچه هغه ښځه د تيمم نه روسته لمونځ هم اوكړى .ترڅوچه ئې غسل نه وى كړې.اود لمونځ وخت پرې نه وى تيرشوې.

تشریح:-خواب بیشکه چي «الثابت بالضرورة لایتعدی عن موضعه» اصول دی .خودا هم اصول دی چه «الضروری متی ما ثبت ،ثبت لجمیع لوازمه» یعنی چي کوم څیزد ارتیا د امله ثابت شي .نوهغه ثابتیږي.د خپلو ټولو لوازماتو سره به ثابتیږي .اود لمونځ ادا کولوپه وخت کي د طهارت د ثبوت د لوازماتو څنی دحیض منقطع کیدل دی .اوعدت د مودې د لوازماتوڅنی د رجعت منقطع کیدل دی .اوقاعده ده.چه «لازم ،لازم، لازم» یعنی دلازم لازم لازمیږي .نوځکه به د لمونځ ادا کولوپه وخت کي دطهارت د ثبوت لپاره د انقطاع رجعت حکم ثابتیږي .(عنایه ،عینی شرح هدایه)

ثُمَّ قِيلَ تَنْقَطِعُ بِنَفْسِ الشُّرُوعِ عِنْدَهُمَا بیا وئیلی شوی دی .چه د شیخینو رحمهما الله په نیز په لمونځ پیل کاوه سره حکم د رجعت منقطع کیږي ، وَقِيلَ بَعْدَ الْفَرَاغِ لِيَتَقَرَّرَ حُكْمُ جَوَازِ الصَّلَاةِ او وئیلی شوی دی .چه د لمونځ نه د فراغت نه روسته (به منقطع کیږي ) چي د لمونځ د جواز حکم ثابت شي .

حل اللغة: ① تنقطع: ختمیږي ② یتقرر:ثابتیږي ]

تشریح:-
بیا دشیخینو رحمهما الله په نیزبعضي حضرات فرمائی .چه څنګه لمونځ پیل کړي .نودرجعت حکم منقطع کیږي .اودبعضورائي دا ده.چه څنګه دلمانځه نه فارغه شي .نودرجعت حکم منقطع کیږي .چه د لمونځ دجواز حکم ثابت شي .هم دا قول صحیح دی.ځکه چي په لمانځه کي د پیل کولونه روسته حالت داسي دی.لکه څنګه چي د پیل کولونه وړاندي وو.نوکه د لمانځه په مهال کي نې اوبه اولیدلې.اود هغي په استعمال باندي نې قدرت هم وی .نودتیمم اثر پاته نه پاتې کیږي .په خلاف د لمونځ نه د فراغت په صورت کي .

## په غسل کي د بدن څینبحصي ته اوبه نه رسول

وَإِذَا اغْتَسَلَتْ وَنَسِيَتْ شَيْئًا مِنْ بَدَنِهَا لَمْ يُصِبْهُ الْمَاءُ او که ښځي غسل اوکړو.حالانکه په خپل بدن کي څه داسي برخه هیره کړله.چه دې ته اوبه نه دی رسیدلی فَإِنْ كَانَ عُضْوًا فَمَا فَوْقَهُ نوکه دا برخه یو اندام وی .یا ددې نه زیات وی لَمْ تَنْقَطِعِ الرَّجْعَةُ نو رجعت به نه مقطع کیږي وَإِنْ كَانَ أَقَلَّ مِنْ عُضْوٍ او که د یو اندام نه کم پاتې شوې وی انْقَطَعَتْ نو رجعت به منقطع وی قَالَ رضي الله عنه: وَهَذَا اسْتِحْسَانٌ مصنف رحمه الله فرمائی .چه دا استحسان دی

تشریح:- صورت د مسئلې دا دی.چه د لسو ورځونه په کمه مودهٔ باندي د وینې په اودریدو ښځي غسل اوکړلو.خوپه بدن کي ترې داسي یوه برخه پاته پاتې شوې وی .چه هغې ته اوبه رسول ضروری وی .نوکه هغه جزء یواندام یا ددې نه زیات وی .نورجعت نه منقطع کیږي .یعنی دغسل نه کیدو په وجه به عدت پاته وی .نوکه په داسي حالت کي مراجعت اوکړي .هغه به صحیح وی .اوکه هغه جزء د یواندام نه کم وی .نورجعت به منقطع شي .یعنی په داسي حالت کي رجعت نه ثابتیږي . صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی .چه دا حکم استحساناً دی.

وَالْقِيَاسُ فِي الْعُضْوِ الْكَامِلِ أَنْ لَا تَبْقَى الرَّجْعَةُ .اوپه پوره اندام کي قیاس دادې.چه د جعت ( حکم) پاته پاتې نشی لِأَنَّهَا غَسَلَتِ الْأَكْثَرَ ځکه چي ده ( د بدن) اکثره ( حصه) اینخلې ده وَالْقِيَاسُ فِيمَا دُونَ الْعُضْوِ أَنْ تَبْقَى اود اندام نه په کم کي قیاس دادې.چه ( درجعت حکم) پاته پاتې نشی لِأَنَّ حُكْمَ الْجَنَابَةِ وَالْحَيْضِ لَا يَتَجَزَّأُ ځکه چي د جنابت او حیض حکم متجزی او ټکړې ټکړې کیږي نه

تشریح:- اوقیاس تقاضا ددې په عکس ده.یعنی په پوره اندام کي رجعت پاته پاتې کیدل نه دې پکار.وې.اود یواندام نه په کم کي پکارده چي رجعت پاته وی .

صاحب دعنایه فرمائیلی دی .چه امام محمد رحمه الله په خپلوکتابونوکي دا نه دی ذکرکړې.چه محل د قیاس څه دې.پوره اندام که د اندام نه کم.البته دامام ابویوسف رحمه الله نه دا روایت شوې دې.چه محل دقیاس پوره



اندام اود اندام نه زیاته برخه ده.امام ابویوسف رحمه الله فرمائی .چه په پوره اندام کي دقیاس تقاضا داده.چه رجعت پاته پاتې نشي .

دلیل دا دې.چه ښځې د خپل بدن اکثره برخه وینخلې ده.اوقاعده دا ده.چه «للاکثر حکم الکل» یعنی اکثرلره حکم د کل دې.نودا داسي شوه.لکه چي واړه بدن ته اوبه رسیدلې دی .نوعدت تیرشو.اودعدت تیریدو نه روسته درجعت حکم پاته نه پاتې کیږي .نوځکه د قیاس تقاضادا ده.چه په دې صورت کي د رجعت حکم پاته پاتې نشي .

وَوَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ وَهُوَ الْفَرْقُ أَنَّ مَا دُونَ الْعُضْوِ يَتَسَارَعُ إِلَيْهِ الْجَفَافُ لِقِلَّتِهِ او وجه د استحسان اوهم دا توپیر دې.چه داندام نه کم ددې د قلت په وجه اوچوالې ډیر زر راځی فَلَا يُتَيَقَّنُ بِعَدَمِ وُصُولِ الْمَاءِ إِلَيْهِ، نو دې ته داوبو نه رسیدلو یقین نشی کیدلې فَقُلْنَا بِأَنَّهُ تَنْقَطِعُ الرَّجْعَةُ نو موږ حکم ورکړو.چه رجعت به منقطع کیږي وَلَا يَحِلُّ لَهَا التَّزَوُّجُ أَخْذًا بِالِاحْتِيَاطِ فِيهِمَا

حل اللغة: ① یتسارع: جلتی کوی ② الجفاف:اچوالې ]

تشریح:-اواستحسان دا دې.چه پوره اندام یا ددې نه زیات چي وچ پاتې شی .نود رجعت حکم دې منقطع نشی .ځکه چي د عدم طهارت د امله عدت پاته دې.اوپه عدت کي د رجعت حکم پاته وی .

اودامام محمد رحمه الله په نیزمحل دقیاس داندام نه کمه برخه ده.امام محمد رحمه الله فرمائی .چه د اندام نه په کمه برخه کي دقیاس تقاضا دا ده.چه رجعت دې پاته وی .دلیل دا دې.چه د اندام نه د کمې برخې وچ پاتې کیدوپه صورت کي حدث پاته دې.ځکه چي د جنابت اوحیض حکم متجزی یعنی ټکړې ټکړې نه وی .نوچه په یوجزء کي حدث پاته وی .اګرچه د یواندام نه کم وی .نوموږ به دا وایو.چه په واړه بدن کي حدث پاته دې.اوچه کله په واړه بدن کي حدث (حیض) پاته شو.نوعدت پاته شو.اوچه عدت پاته وی .نودرجعت حکم به هم پاته وی .

اووجه د استحسان دا ده.اوهم دا د پوره اندام اود اندام د کمې برخې په مینځ کي وجه دفرق ده.چه د یواندام نه کم د خپل کموالی د امله ډیرزروچیږي .نودغه برخې ته د اوبونه رسیدو یقین نشی کولې.ځکه چي کیداې شی .دغه برخه نې وینځلې وی .خوزروچه شوې وی .نوځکه موږ په احتیاط باندې عمل کوو.اووایو.چه د رجعت حکم منقطع شو.اود احتیاط په وجه دا حکم دې.چه دا ښځه دې په داسي حالت کي بل خاوند سره نکاح نه کوی .اوکه وې کړله.نوحلاله به نه وی .ځکه چي کیداې شی .دغه برخې ته په حقیقت کي اوبه نه وی رسیدلې.اوحدث پاته پاتې کیدو په وجه عدت پاته وی .نوپه داسي حالت کي به دا نکاح د غیرد معتده سره وی .اودا جائزنه ده.(چه یوه ښځه دچا په عدت کي ناسته وی .اوهغې سره بل څوک نکاح اوکړي )

بِخِلَافِ الْعُضْوِ الْكَامِلِ او ددې ښځې لپاره ( دوهم خاوند سره) نکاح کول هم حلال نه دی .په دواړو کي په احتیاط باندې عمل کاوه سره،په خلاف د پوره اندام لِأَنَّهُ لَا يَتَسَارَعُ إِلَيْهِ الْجَفَافُ ځکه چي دې ارخ ته اوچوالې زر نه راځی وَلَا يُغْفَلُ عَنْهُ عَادَةً او ددې نه عام طورباندې غافله کیداې هم نشی فَافْتَرَقَا .( نوپه کامل اندام اود اندام په جزء کي توپیر واضح شو

تشریح:- ددې په خلاف که پوره اندام وچ پاتې شی .نوپه دې صورت کي درجعت حکم نه منقطع کیږي .ځکه چي پوره اندام زر نه وچیږي .اوعام طورد پوره اندام نه انسان غافله هم نه پاتې کیږي .نوهم دا به وئیلی شي .چه تراوسه پورې نې دا اندام نه دې وینځلې.اوهرکله چي داسي ده.نوغسل نامکمله دې.اوچه غسل نامکمله ده.نوددې عدت پاته دې.اوپه عدت کي درجعت حکم هم پاته وی .نوځکه به په دې صورت کي حکم د رجعت پاته وی .نوپه پوره اندام اوداندام نه په کمه برخه کي توپیر ښکاره شو.

وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ تَعَالَى: أَنَّ تَرْكَ الْمَضْمَضَةِ وَالِاسْتِنْشَاقِ كَتَرْكِ عُضْوٍ كَامِلٍ او د ابويوسف رحمه الله نه روايت
دي.چه په كلى كول او پزه كي اوبه اچول پاتي كيدل داسي دي .لكه د پوره اندام پاتي كيدل وَعَنْهُ وَهُوَ قَوْلُ مُحَمَّدٍ
رَحْمَةُ اللهِ تَعَالَى عَلَيْهِ: هُوَ بِمَنْزِلَةِ مَا دُونَ الْعُضْوِ وَعَنْهُ وَهُوَ قَوْلُ مُحَمَّدٍ رَحْمَةُ اللهِ تَعَالَى عَلَيْهِ: هُوَ بِمَنْزِلَةِ مَا دُونَ الْعُضْوِ او د
ابويوسف رحمه الله نه يو روايت اوهم دا د امام محمد رحمه الله قول دي.چه د اندام نه د كم په مرتبه كي دي. لِأَنَّ فِي
فَرْضِيَّتِهِ اخْتِلَافًا بِخِلَافِ غَيْرِهِ مِنَ الْأَعْضَاءِ.خكه چې په كلى كولو او په پزه كي د اوبو اچولو په فرضيت كي اختلاف
دي.په خلاف د نورو اندامونو.

تشريح:- كه د لسو ورځونه په كمه موده كښې يوه ښځه د حيض نه پاكه شوه.اوغسل ئې اوكړلو.خو په خوله كي
اوبه اچول يا په پزه كي اوبه اچول ئې پريخودل.نو په دې كي دامام ابويوسف رحمه الله نه دوې [دوه] روايتونه دي
.يوروايت دا دي.چه رجعت نه منقطع كيږي .لكه څنګه چې د پوره اندام په نه وينځلو رجعت نه منقطع كيږي
.ددې روايت په بناء په خوله كي اوبه اچول او په پزه كي اوبه اچول هريو د پوره اندام په مرتبه كي دي.هشام
دامام ابويوسف رحمه الله نه دا روايت كړې دي.② او دوهم روايت كوم چې امام كرخى رحمه الله دامام ابويوسف رحمه الله
نه كړې دي.هغه دا دي.چه رجعت منقطع كيږي .اوبه خوله كي اوبه اچول يا په پزه كي اوبه اچول د يواندام نه
دكمې برخې پريخودو پشان دی .خكه چې په غسل كې په خوله كي اوبه اچولو او په پزه كي اوبه
اچولو د فرضيت كي اختلاف دي.دامام مالك او امام شافعى رحمه الله په نيزد په غسل او اودس دواړو كي په خوله
كي اوبه اوچول او په پزه كي اوبه اچول سنت دی .اوزموږ په نيز په غسل كي فرض او په اودس كي سنت دی
.ددې په خلاف نوراندامونه خكه چې د هغې په فرضيت كي دچا اختلاف نشته.دا دوهم روايت دامام محمد
رحمه الله قول هم دي.

### حاملې ښځې ته طلاق وركول يا ماشوم پيدا كيدل اود خاوند دجماع نه انكاركول

وَمَنْ طَلَّقَ امْرَأَتَهُ اوكوم كس چې خپلې ښځې ته طلاق وركړو وَهِيَ حَامِلٌ حالانكه دا حامله ده أَوْ وَلَدَتْ مِنْهُ أَوْ
وَلَدَتْ مِنْهُ يا دې ده نه بچې راوړلې دي وَقَالَ لَمْ أُجَامِعْهَا اودې سرې اووئيل.چه ما ددې سره جماع نه ده
كړې فَلَهُ الرَّجْعَةُ نودې كس ته د رجعت اختيار دي

تشريح:- صورت د مسئلې دا دي.چه يوكس خپلې ښځې ته طلاق وركړلو.حالانكه دده دا ښځه حامله وه.يا د
طلاق نه وړاندې ئې په نكاح كي ماشوم پيدا شوې وو.اودا كس وائى .چه ما خپلې دې ښځې سره جماع نه
ده كړې.ددې باوجود كه دا كس رجعت كول غواړي .نوشريعت ده ته د رجعت پوره پوره اختيار وركړي
دي.اودده دا قول چې ماجماع نه ده كړې.شرعاً غيرمعتبردي.

لِأَنَّ الْحَبَلَ مَتَى ظَهَرَ فِي مُدَّةٍ خكه چې حمل هركله په دومره موده كي ښكاره شو يُتَصَوَّرُ أَنْ يَكُونَ مِنْهُ جُعِلَ مِنْهُ
چې د خاوند نه كيدل ممكن وی .نودا به هم د خاوند ګنړلې شى لِقَوْلِهِ ﷺ "{ الْوَلَدُ لِلْفِرَاشِ }(١) خكه د نبى
كريم ﷺ ارشاد دي.چه بچې د فراش والا دي وَذَلِكَ دَلِيلُ الْوَطْءِ مِنْهُ اودا ددې سړی ( د طرف) نه د وطى دليل دي
وَكَذَا إِذَا ثَبَتَ نَسَبُ الْوَلَدِ مِنْهُ اوهم دغه شان چې كله د بچى نسب ددې خاوند نه ثابت وی . جُعِلَ وَاطِئًا نودا به
وطى كونكې ګنړلې شى وَإِذَا ثَبَتَ الْوَطْءُ او هركله چې وطى ثابت شوه تَأَكَّدَ الْمِلْكُ نوملك مؤكد شو

تشريح:-دليل دا دي.چه حمل هركله په دومره مودهٔ كي ښكاره شو.چه هغه د خاوند حمل ګرځول ممكن

(١) من حديث أبى هريرة رضى الله عنه أخرجه البخارى فى الفرائض باب ١٨ رقم ٦٧٥٠ ومسلم فى الرضاع رقم ٣٧ وأبوداود فى الطلاق باب
٣٤ رقم ٢٢٧٤ والترمذى فى الرضاع باب ٨ ر٤م ١١٥٧ والنسائى فى الطلاق باب ٤٨٧ ر٤م ٣٣٥٨ وابن ماجه فى النكاح باب ٥٩
رقم ٢٠٠٦)_



وی .نودا حمل به هم د خاوندحمل ګرځولې شى .خكه چې ثابته شوه.چه دا ښځه دطلاق په وخت كي حامله
وه.اوددې ماشوم نسب به ددې خاوند نه خكه ثابتيږى .چه نبى ﷺ فرمائيلى دی .« الولد للفراش » يعنى
ماشوم د فراش دې.اوپه يوحديث كي دی .« الولد للفراش وللعاهر الحجر » يعنى ماشوم د فراش لپاره
دې.اود زناكار لپاره رجم دې.بهرحال دا ماشوم هم ددې خاوند لپاره ګرځول د وطى دليل دې.اوهم دغه ډول
كه دماشوم دده نه نسب ثابت شى .نودا كس به وطى كونكې ګرځولې شى .خكه چې بغيروطى ماشوم پيدا
كيدل ممكن نه دی .

نوهركله چې د خاوند دارخه وطى ثابته شوه.چه ملك مؤكد شو.يعنى دا خبره ثابته شوه.چه ښځه مدخول
بها ده.اوپه ملك مؤكد كي كه طلاق وركړې شى .يعنى كه مدخول بها ته طلاق وركړې شى .نودې ته مراجعت
كول صحيح دی .نوځكه دلته خاوندته د رجعت اختيارشته.اوپاتې شوه دده دا خبره چې ما جماع نه ده
كړې.نودا قول ددې امله باطل دې.چه شريعت دې دروغژن ګرځولې دې.

علامه عينى شارح دهدايه رحمه الله دلته يواعتراض نقل كړې دې.اود هغې خواب ئې كړې دې.اعتراض دا
دې.چه دلته ثبوت د نسب دلالة دې.اودده قول چې « لم اجامعها » صراحة دې.اوصريح فائق اواوچت وی د
دلالت نه،نود خاوند قول چې ما ورسره جماع نه ده كړې دا پكار ده.چه معتبر وی .اوده ته د رجعت اختيار
نه دی وركول پكار.

خواب دلالت د شارع رحمه الله دارخه دې.اوصراحت دبنده د ارخه دې.اود شارع دلالت د بنده د صراحت نه
زيات قوي وی .اواعتبار اقوى لره وی .غيراقوى لره نه وی .

وَالطَّلَاقُ فِي مِلْكٍ مُتَأَكِّدٍ يَعْقُبُ الرَّجْعَةَ،اوپه ملك مؤكد كې د طلاق نه روسته رجعت وی وَيَبْطُلُ زَعْمُهُ بِتَكْذِيبِ
الشَّرْعِ اودده قول ( چې ما جماع نه ده كړې) د شريعت په دروغ كاوه سره باطليږی أَلَا تَرَى أَنَّهُ يَثْبُتُ بِهَذَا الْوَطْءِ
الْإِحْصَانُ آيا نه ګورې.چه په دې وطى سره احصان ثابتيږی فَلَأَنْ تَثْبُتَ بِهِ الرَّجْعَةُ أَوْلَى نو په دې سره به په
درجه اولى رجعت ثابتيږی

حل اللغة: ① يعقب: روستو راځى ② تكذيب: دروغژن كول ]

تشريح:صاحب دهدايه رحمه الله فرمائى .چه طلاق په ملك مؤكد كي رجعت لره ثابتوی .ددې دليل دا هم دې.چه
په دې وطى سره احصان ثابتيږی .حالانكه احصان لره په عقوبت اوسزا وركولو كي دخله ده.نوپه دې وطى
سره هغه رجعت چې په هغې كي دعقوبت څه دخله نشته.هغه به پرې خامخا ثابتيږی .

وَتَأْوِيلُ مَسْأَلَةِ الْوِلَادَةِ أَنْ تَلِدَ قَبْلَ الطَّلَاقِ اود ولادت د مسئلې تاويل دادې.چه د طلاق ور كاوه نه وړاندې دې
بچى راوړلې دې لِأَنَّهَا لَوْ وَلَدَتْ بَعْدَهُ تَنْقَضِي الْعِدَّةُ بِالْوِلَادَةِ خكه كه د طلاق نه روسته ئې راوړلې وو فَلَا تُتَصَوَّرُ الرَّجْعَةُ نو
په ولادت سره عدت تيرشو.بيا رجعت ممكن پاتې نشو.

تشريح:- د ولادت د مسئلې تاويل دا دې.چه هغه ښځې د طلاق ملاويدو نه وړاندې ماشوم زيږولې دې.خكه
كه هغې د طلاق نه روسته ماشوم زيږولې وو.نود بچى په پيدا كيدو سره به دهغې عدت پوره شوې وو.نود
محل فوت كيدو په وجه به د رجعت امكان پاته پاتې نشو.

### دخلوت نه روسته دجماع نه انكار اوطلاق وركول

قَالَ فَإِنْ خَلَا بِهَا اوكه خاوند ښځې سره خلوت اوكړو وَأَغْلَقَ بَابًا او دروازه ئې بنده كړله. أَوْ أَرْخَى سِتْرًا يا ئې
پرده پريخودله وَقَالَ لَمْ أُجَامِعْهَا او وې وئيل.چه ما ددې سره جماع نه ده كړې ثُمَّ طَلَّقَهَا بيا ئې دې ته طلاق
وركړو لَمْ يَمْلِكِ الرَّجْعَةَ نو( ددې سره ) رجعت نشى كولې لِأَنَّ تَأَكُّدَ الْمِلْكِ بِالْوَطْءِ خكه چې دملك مؤكدل كيدل
په وطى سره كيږی وَقَدْ أَقَرَّ بِعَدَمِهِ حالانكه ده د وطى نه كاوه اقرار كړې دې فَيُصَدَّقُ فِي حَقِّ نَفْسِهِ نود خاوند د
ذات په حق كې به تصديق كولاى شى وَالرَّجْعَةُ حَقُّهُ او رجعت د خاوند حق دې

**حل اللغة:** ① **اغلق**: بنده کړه ② **ارخی**: رازوړنده کړه ③ **ستر**: پرده ]

**تشریح:-** په کتاب کې د مبسوط دکتاب الطلاق د روایت مطابق «واغلق الباب اوارخی ستراً» د ،،او،، د کلمې سره دې.اودجامع صغیرد روایت مطابق «وارخی الستر» په کلمه و ،،واو،،سره دې.دمبسوط دکتاب الطلاق عبارت زیات صحیح دې.

ⓐاوس صورت د مسئلې دا دې.چه خاوند ښځې سره خلوت اوکړلو.اودروازه ئې بنده کړه.اوپرده ئې راکښته کړله.اواووائی .چه ما دې سره جماع نه ده کړې.اوبیا طلاق ورکړی .نودې به درجعت مالك نه وی .څکه چې غیرمدخول بها د طلاق نه روسته دعدت نه بغیربائنه ګرځی .ددې امله به رجعت نه وی .

ⓐدلیل دا دې.چه دملك نکاح تاکید په وطی سره راځی .حالانکه ده د وطی نه کولواقرار کړې دې.نودده په حق کې به دده د اقرارتصدیق کولې شی .اورجعت دده حق دې.نود رجعت د حق په باطلولوکې به دده قول معتبر وی .

**وَلَمْ يَصِرْ مُكَذَّبًا شَرْعًا، بِخِلَافِ الْمَهْرِ** اود شریعت د اړخه دده تکذیب هم نه دې شوې.په خلاف د مهر **لِأَنَّ تَأَكُّدَ الْمَهْرِ الْمُسَمَّى يَبْتَنِي عَلَى تَسْلِيمِ الْمُبْدَلِ لَا عَلَى الْقَبْضِ** څکه چې د مهرمؤکد کیدل، د مبدل په سپارلو باندې مبنی دی

**تشریح:-** په «ولم یصرمکذبا شرعا» سره داعتراض څواب دې.اعتراض دا دې.چه د شریعت د اړخه ددې کس هم تکذیب شوې دې.څکه چې شریعت په ده باندې کامل مهرواجب کړې دې.اومهرکامل د دخول نه روسته واجبیږی .دطلاق قبل الدخول په صورت کې نه واجبیږی .نوپه دې صورت کې په ده باندې کامل مهرواجبول ددې خبرې دلیل دې.چه شریعت دده په دې قول کې چا ما ورسره جماع نه ده کړې. اعتبارنه کوی .بلکه دده تکذیب کوی .اوهرکله چې دا کس په خپله دې وینا کې دروغژن دې.نودا داسې شوه.چه جماع واقع شو.اود جماع نه روسته دطلاق په صورت کې د رجعت اعتبارکولې شی .نوده ته په دې صورت کې د رجعت اعتبارپکارده چې وی .

ⓐخواب دمقررشوی مهرمؤکد کیدل په مبدل یعنی د بضع په سپارلوپورې موقوف دې.په بضع (وطی) باندې نه دې موقوف،نودخلوت صحیحه ذریعه دمقرر شوی مهرمؤکد کیدل ددې سرې په وطی کولوباندې دلالت نه کوی .نوچه په خاوند باندې کامل مهر واجبیږی .ددې نه دا نه لازمیږی .چه دۀ دې ورسره وطی کړې وی .نوثابته شوه.چه دشریعت داړخه دده په قول کې چې ما ورسره جماع نه ده کړې تکذیب نه دې شوی

**بِخِلَافِ الْفَصْلِ الْأَوَّلِ** .په قبضه باندې نه ( دی مبنی ).په خلاف د ړومبی صورت

**تشریح:-** ددې په خلاف اولنې صورت دې.چه حمل اوثبوت د نسب دوطی نه بغیرنه کیږی .نوپه دغه صورت کې به دهغه مکذب کیدل ثابتیږی .

**فَإِنْ رَاجَعَهَا** بیا که دې سره نې رجعت اوکړو **مَعْنَاهُ بَعْدَمَا خَلَا بِهَا وَقَالَ لَمْ أُجَامِعْهَا** یعنی د خلوت صحیحه نه روسته نې دا اووئیل.چه ما ذدې سره جماع نه ده کړې **ثُمَّ جَاءَتْ بِوَلَدٍ لِأَقَلَّ مِنْ سَنَتَيْنِ بِيَوْمٍ** بیا د دوې [دوه] کاله نه یوه ورځ کم باندې دې بچې راوړو **صَحَّتْ تِلْكَ الرَّجْعَةُ** نودا رجعت به صحیح وی **لِأَنَّهُ يَثْبُتُ النَّسَبُ مِنْهُ** څکه چې ( ددې بچی ) نسب ددې سړی نه ثابت شوې دې **إِذْ هِيَ لَمْ تُقِرَّ بِانْقِضَاءِ الْعِدَّةِ** څکه چې ښځې د خپل عدت تیریدلو اقرار نه دې کړی

**تشریح:-** خرمانی .که د خلوت صحیحه نه روسته نې دا اووئیل.چه ما دې سره جماع نه ده کړې.اودخپلې دې بی



بی نه نې مراجعت اوکړلو.بیا دې ښځې د دوو کالونه په کمه موده کې بچې اوزیږلو.نودا رجعت صحیح شو.اود دوو کالوشماربه دطلاق د ورځ نه کیږی .د رجعت د ورځې څخه به نه کیږی .درجعت په صحت باندې دلیل دا دې.چه ددې ماشوم نسب هم دده نه ثابتیږی .دبل چا نه نه ثابتیږی .څکه چې ښځې دعدت تیریدو اقرار نه دې کړی.اوماشوم تردووکالو پورې د مور په نس کې پاتې کیدای شی .نود نسب ثبوت ددې خبرې دلیل دې.چه دې کس چې دا نې وئیلی وو.چه ما خپلې ښځې سره جماع نه ده کړې.ده خپلې ښځې سره وطی کړې ده

**وَالْوَلَدُ يَبْقَى فِي الْبَطْنِ هَذِهِ الْمُدَّةَ** او بچې په دومره موده کې په نس کې پاتې کیدای شی **فَأُنْزِلَ وَاطِئًا قَبْلَ الطَّلَاقِ دُونَ مَا بَعْدَهُ** نود طلاق نه وړاندې به وطی کونکې ګرځولې شی .د طلاق نه روسته نه **لِأَنَّ عَلَى اعْتِبَارِ الثَّانِي يَزُولُ الْمِلْكُ بِنَفْسِ الطَّلَاقِ لِعَدَمِ الْوَطْءِ قَبْلَهُ** څکه چې په دوهم احتمال باندې ملك د نکاح په نفس طلاق سره زائل کیږی .د طلاق نه وړاندې وطی نه موجود کیدلو په وجه **فَيَحْرُمُ الْوَطْءُ** نو وطی به حرام وی **وَالْمُسْلِمُ لَا يَفْعَلُ الْحَرَامَ** او مسلمان فعل حرام نه کوی .

**تشریح:-** اوس پاتې شوه دا خبره چې دا وطی د طلاق نه وړاندې ده اوکه روستو،نواګرچه دلته دواړه احتمالات شته.خومونږ به دا په وطی قبل الطلاق باندې حمل کوو.ددې امله که په وطی بعدالطلاق باندې نې حمل کړو.نودا حرامه وطی شوه.څکه چې د طلاق نه وړاندې وطی نه وی شوې.نودا ښځه قبل الدخول د طلاق په وجه بائنه شوه.اوددې سره وطی کول حرام دی .اومسلمان دحرام فعل ارتکاب نه کوی .ددې امله به دا وطی په قبل الطلاق باندې حمل کولې شی .چه د مسلمان فعل په صلاح باندې حمل کړې شی .

### په ولادت پورې تعلیق دطلاق اودوې [دوه] څله د ولادت واقع کیدل

**فَإِنْ قَالَ لَهَا إِذَا وَلَدْتِ فَأَنْتِ طَالِقٌ** نوکه سړی خپلې ښځې ته اووئیل «إذا ولدت فانت طالق» **فَوَلَدَتْ** بیا ددې بچې پیدا شو **ثُمَّ أَتَتْ بِوَلَدٍ آخَرَ** بیا نې دوهم بچې پیدا شو **فَهِيَ رَجْعَةٌ** نودا ولادت ثانیه رجعت دې **مَعْنَاهُ مِنْ بَطْنٍ آخَرَ** ددې مراد دادې.چه ( دوهم بچې) د بطن آخر نه ( پیدا ) وی **وَهُوَ أَنْ يَكُونَ بَعْدَ سِتَّةِ أَشْهُرٍ وَإِنْ كَانَ أَكْثَرَ مِنْ سَنَتَيْنِ** او بطن آخر دادې.چه شپږ میاشتې روسته وی **إِذَا لَمْ تُقِرَّ بِانْقِضَاءِ الْعِدَّةِ** اګرچه د دوې [دوه] کالونه زیات وی .چه ترکومه پورې ښځې د عدت تیریدو اقرار نه وی کړې

**تشریح:-** مسئله دا ده.چه یوکس خپلې ښځې ته اووئیل. «إذا ولدت فانت طالق» اودې یوماشوم اوزیږلو . او بیا نې شپږ میاشتې روسته بل ماشوم اوزیږلو.نودا د دوهم ماشوم پیدا کیدل رجعت دې.

ⓐحاصل دا چې دا د دواړو ماشومانو په ولادت کې شپږ میاشتې وی .برابره ده که دوهم ولادت د شپږو میاشتو نه په کمه موده کې شوې وی .اود دووکالونه په زیاته موده کې ،په دواړو صورتونو کې رجعت ثابتیږی .

**لِأَنَّهُ وَقَعَ الطَّلَاقُ عَلَيْهِ بِالْوَلَدِ الْأَوَّلِ** څکه چې په دې باندې په ولد اول سره طلاق واقع شو **وَوَجَبَتِ الْعِدَّةُ** اوعدت واجب شو **فَيَكُونُ الْوَلَدُ الثَّانِي مِنْ عَلُوقٍ حَادِثٍ مِنْهُ فِي الْعِدَّةِ** نو ولد ثاني به په داسې علوق ( نطفه) سره وی .کوم چې د خاوند نه د ښځې په عدت کې پیدا شوې وی **لِأَنَّهَا لَمْ تُقِرَّ بِانْقِضَاءِ الْعِدَّةِ** څکه چې ښځې دعدت تیریدلو اقرار نه دې کړې **فَيَصِيرُ مُرَاجِعًا** نودا (خاوند) به رجعت کونکې وی .

**حل اللغة:** ① **العلوق**: په رحم کې د نطفې داخلیدل او د بچی د پیدا کیدو مراحل پیل کیدل]

**تشریح:-** دلیل دا دې.چه د اولنی بچی په ولادت سره ښځه طلاقه شوه.اوعدت واجب شو.نود دوهم ماشوم زیږیدل به د نوی علوق نه وی .اوښځې دعدت تیریدو اقرار هم نه دې کړې.نودې کس به په طلاق رجعی سره د طلاق نه روسته دې سره په عدت کې جماع کړې وی .اوددې امله به رجعت کونکې شمارلې شی .

## د ﴿كلما ولدت فانت طالق﴾ نه روسته د ښځي دري ځله ولادت

وَإِنْ قَالَ كُلَّمَا وَلَدْتِ وَلَدًا او که سړی اووئیل چه کله تا بچی راوړو فَأَنْتِ طَالِقٌ نو ته دي طلاقه ئې فَوَلَدَتْ ثَلَاثَةَ أَوْلَادٍ فِي بُطُونٍ مُخْتَلِفَةٍ نودې په مختلف دري بطون ( یعنی جلا جلا حمل) کې دري بچي راوړل فَالْوَلَدُ الْأَوَّلُ طَلَاقٌ نو رومبي بچي طلاق دي وَالْوَلَدُ الثَّانِي رَجْعَةٌ او دوهم بچي رجعت دي وَكَذَا الثَّالِثُ اوهم دغه ډول دریم بچي

تشریح:- صورت د مسئلي دا دي چه خاوند خپلي ښځي ته اووائی. ﴿کلما ولدت فانت طالق﴾ بیا دې ښځي جلا جلا په دريوخيټوسره دري ماشومان اوزیږول یعنی د دوو ماشومان په ولادت کي د شپږو میاشتو یا ددې نه د زیاته موده وی. نوددې حکم دا دي چه د اولنی ماشوم په زیږیدل به طلاق واقع شی. اود دوهم ماشوم په ولادت سره به اولني رجعت ثابت شی. ددې نه روسته به دستي دوهم طلاق واقع شی. دغه ډول د دریم ماشوم د پیدا کیدو نه وړاندي به رجعت ثابتیږی. اوبیا به دریم طلاق واقع کیږی.

لِأَنَّهَا إِذَا جَاءَتْ بِالْوَلَدِ الْأَوَّلِ خکه چي کله دې رومبي بچي راوړلو وَقَعَ الطَّلَاقُ نو طلاق واقع شو وَصَارَتْ مُعْتَدَّةً او معتده شوه ، وَبِالثَّانِي صَارَ مُرَاجِعًا لِمَا بَيَّنَّا او په دوهم بچي سره دا رجعت والا شوه. د هغه دلیل په وجه کوم چي موږ بیان کړي دي أَنَّهُ يُجْعَلُ الْعُلُوقُ بِوَطْءٍ حَادِثٍ فِي الْعِدَّةِ چي علوق ( نطفه) په داسي وطی سره مقررکیږی. کوم چي په عدت کي دننه واقع شوي ده

تشریح:-دلیل دا دي چه کله اولني ماشوم پیدا شو. نوپه زیږیدل پوري دطلاق د تعلیق په وجه یوطلاق واقع شو. اوښځه معتده شوه. دې نه روسته چي کله دوهم ماشوم پیدا شو. نورجعت ثابت شو. خکه چي شپږ میاشتي روسته د بل ماشوم پیدا کیدل ددې خبري دلیل دي. چه ددي ښځي سره په عدت کي جماع شوي ده. اوپه عدت کي جماع کول رجعت ثابتوی. نوخکه رجعت ثابت شو. اود دوهم ماشوم په ولادت دوهم طلاق واقع کیږی. چه د کلما د لفظ سره د قسم منعقد کول دا تقاضا کوی. چه تکرارد شرط راشی. نوتکرارد جزاء به هم راخی. او دوهم طلاق نه روسته به بیا عدت واجب وی ددې نه روسته د دریم ماشوم زیږیدل ددې خبري دلیل دي. چه دې ښځي سره په عدت راسته وطی شوي ده. اود معتده رجعیه سره وطی کول رجعت ثابتوی.

وَيَقَعُ الطَّلَاقُ الثَّانِي بِوِلَادَةِ الْوَلَدِ الثَّانِي اود دوهم بچي ولادت سره به دوهم طلاق واقع کیږی. لِأَنَّ الْيَمِينَ مَعْقُودَةٌ بِكَلِمَةِ كُلَّمَا خکه چي یمین په کلمه د ،،کلما،، سره منعقد شوي دي وَوَجَبَتِ الْعِدَّةُ او عدت واجب شو وَبِالْوَلَدِ الثَّالِثِ صَارَ مُرَاجِعًا لِمَا ذَكَرْنَا او دریم بچي سره دا مراجعه کوکي شو. د هغه دلیل په وجه کوم چي موږ ذکرکړي دي ،، وَتَقَعُ الطَّلْقَةُ الثَّالِثَةُ بِوِلَادَةِ الثَّالِثِ وَوَجَبَتِ الْعِدَّةُ بِالْأَقْرَاءِ او د دریم بچي په ولادت سره دریم طلاق واقع کیږی. او عدت واجب شو. په حیضونو سره لِأَنَّهَا حَامِلٌ مِنْ ذَوَاتِ الْحَيْضِ حِينَ وَقَعَ الطَّلَاقُ خکه چي دا ښځه حامله د طلاق د وقوع په وخت د ذوات الحیض خنی ده.

تشریح:- او د دریم ماشوم په زیږیدل باندي دریم طلاق واقع کیږی. خکه چي کلمه د کلما د تکرارتقاضا کوی. او اوس په دې ښځه د حیض سره د عدت تیرول واجب دی. خکه چي دا ښځه د دریم طلاق واقع کیدو په وخت کي د ذوات الحیض خنی ده.

## په طلاق رجعي سره طلاقي شوې لپاره زیب اوزینت

وَالْمُطَلَّقَةُ الرَّجْعِيَّةُ تَتَشَوَّفُ وَتَتَزَيَّنُ او مطلقه رجعیه به ( د خپل خان میک اپ) ډول کوی او ( خان به) ښائسته کوی لِأَنَّهَا حَلَالٌ لِلزَّوْجِ خکه چي دا ښځه دخپل خاوند لپاره حلاله ده إِذِ النِّكَاحُ قَائِمٌ بَيْنَهُمَا خکه چي نکاح په دواړو کي قائم ده



حل اللغة: ① تتشوف: خان ښائسته کوی ② تتزین: زیب وزینت کوی ]

تشریح:- صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی. چه کومې ښځي ته طلاق رجعی ورکړی شوي وی. نوهغې لپاره مستحب دی چه خپل خان ښائسته کوی. یعنی خپل مخ اوانګی ښائسته ساتی. دلیل دا دي چه مطلقه رجعیه دخپل خاوند لپاره حلاله ده. خکه چي په دواړوکي نکاح قائمه ده. هم دا وجه ده. چه دطلاق رجعی په مهال کي د نکاح واړه احکام میراث وغیره واړه پاته وی. هم ددې امله که یوکس اووئیل. ﴿کل إمرأة لی طالق﴾ نوپه دي حکم کي دا مطلقه هم داخله ده. اوپه دې به طلاق واقع کیږی.

ⓐپه دي باندي اشکال کیږی. چه هرکله نکاح موجود ده. نوپکارده چي دې سره سفرجائزوې. لکه خنګه د منکوحه غیرمطلقه سره سفر کول جائزدي. حالانکه تاسود سفرد جواز قائل نه ئې.

ⓐخواب دا دي. چه د مطلقه رجعیه سره د سفرممانعت په نص سره ثابت دي. ارشاد دي. ﴿لاتخرجوهن من بیوتهن﴾ یعني مطلقات رجعیه د دوی دکورونو نه مه اوباسی؛ ودا آیت د مطلقه رجعیه په اړه کي نازل شوي دي. نوددې آیت په وجه د مطلقه رجعیه سره سفرکولوممانعت شوې دې.

ⓐخوکه یوکس اعتراض اوکړی. چه نفس سفرنې د رجعت دلیل ولې نه دي ګرخولی. نوددې خواب دا دي. چه اخراج من البیت یعنی دمطلقه رجعیه دکور نه ویستل منهی عنه دی. او رجعت مندوب الیها دی. اوپه دې دواړوکي منافات دي. اود کومودووخیزونوپه مینخ کي چي منافات وی. په هغې کي یو د بل لپاره دلیل نشی جوړیدي. نوخکه نفس مسافرت د رجعت دلیل نشی جوړیدي.

ثُمَّ الرَّجْعَةُ مُسْتَحَبَّةٌ بیا رجعت کول مستحب دی وَالتَّزَيُّنُ حَامِلٌ لَهُ عَلَيْهَا اود ښځي ( ډول او) سنګار په دي باندي اماده کونکي دي فَيَكُونُ مَشْرُوعًا په دې وجه به سنګارمشروع وی وَيُسْتَحَبُّ لِزَوْجِهَا أَنْ لَا يَدْخُلَ عَلَيْهَا او ددې د خاوند لپاره مستحب دی. چه دې له ( نیزدې) نه راخی حَتَّى يُؤْذِنَهَا أَوْ يُسْمِعَهَا خَفْقَ نَعْلَيْهِ تردې چي دا خبرکړی. یا دې ته د خپل پیزار کشار واوروی مَعْنَاهُ إِذَا لَمْ يَكُنْ مِنْ قَصْدِهِ الْمُرَاجَعَةُ د قدوری رحمه الله د کلام مراد دادې. چه هرکله دده د مراجعت اراده نه وی لِأَنَّهَا رُبَّمَا تَكُونُ مُتَجَرِّدَةً خکه چي ښځه ډیرکرته برښده وی فَيَقَعُ بَصَرُهُ عَلَى مَوْضِعٍ يَصِيرُ بِهِ مُرَاجِعًا نو( کیداې شی چه) دده نظر په داسي خائي باندي اولګی. چه په دې سره دې رجعت کونکي کیږی ثُمَّ يُطَلِّقُهَا نو بیا به دې ته طلاق ورکوی فَتَطُولُ الْعِدَّةُ عَلَيْهَا نوپه ښځه به دعدت زمانه اوګده شی

حل اللغة: ① خفق: کشار ② مجرده: خالی ③ موضع: خائي ④ تطول: اوږدیږی ]

تشریح:-فرمائی. چه رجعت مستحب دي. اوښائست خاوندلره په رجعت کولوباندې اماده کونکي دي. اوخان ته ښائسته کول مشروع دی. اودمطلقه رجعیه د خاوند لپاره دا مستحب دی. چه هغه بغیرد خبرورکولونه هغې ته نه ورخی. خودا حکم په هغه وخت کي دي. چه دده اراده د رجعت کولونه وی.

ⓐدلیل دا دي. چه بعضې وخت ښخه په کور کي برښده وی. نوچه بغیرد خبرورکولونه کورته داخل شی. نو دې کس اراده د رجعت کولونه ده. نودې به ورته طلاق ورکوی. اود طلاق ورکولوپه صورت کي خامخا په ښخه باندې عدت اوږدیږی. ددې امله حکم ورکړې شوي دې. چه خاونددې د خبرورکولونه بغیرنه ورخی. یا دې د پیزار په کشاری خبر ورکوی.

وَلَيْسَ لَهُ أَنْ يُسَافِرَ بِهَا حَتَّى يُشْهِدَ عَلَى رَجْعَتِهَا اونه دی ( جائز) دده لپاره چي سفر اوکړی په دې. تردې چي په رجعت ګاوه ګواه جوړکړی وَقَالَ زُفَرُ رَحْمَةُ اللهِ تَعَالَى عَلَيْهِ: لَهُ ذَلِكَ لِقِيَامِ النِّكَاحِ اوامام زفر رحمه الله فرمائیلی دی. چه دده لپاره داجائز دی. د نکاح د قائمیدلو په وجه وَلِهَذَا لَهُ أَنْ يَغْشَاهَا عِنْدَنَا اوهم په دې وجه د خاوند لپاره جائز دی. چه ددې سره وطی اوکړی. زموږ په نیز

حل اللغة* ① يغشى: وطى كوى ]

تشريح:-پاتې شوه دا خبره چې خاوند خپل ځان سره مطلقه رجعيه باندې سفر كولاى شى كه نه؟نود درې واړه امامانو په نيزد مطلقه رجعيه سره سفركول هم جائزدى .(اوزمونږ په نيز جائزنه دى)

وَلَنَا قَوْلُهُ تَعَالَى {وَلَا تُخْرِجُوهُنَّ مِنْ بُيُوتِهِنَّ} الْآيَةَ او زمونږ دليل د الله تعالى قول ((وَلَا تُخْرِجُوهُنَّ مِنْ بُيُوتِهِنَّ)) يعنى دوى د خپل مسكن نه مه اوباسئ.

تشريح:- زمونږ دليل دا دې چه الله تعالى فرمائيلى دى ((وَلَا تُخْرِجُوهُنَّ مِنْ بُيُوتِهِنَّ)) ددې آيت په اړه كې دتفسيردامامانونه منقول دى .چه دا د مطلقه رجعيه په اړه كې نازل شوې دې.ژباړه به دا شى .چه مه اوباسئ هغه ښځې چې طلاق رجعى مو ورته وركړې وى .دهغوى دكورونونه،نوددې آيت نه ثابته شوه.چه د خاوند لپاره دوى لره دكور نه ويستل جائزنه دى .

وَلِأَنَّ تَرَاخِيَ عَمَلِ الْمُبْطِلِ لِحَاجَتِهِ إِلَى الْمُرَاجَعَةِ، او خكه چې د مبطل ( طلاق) عمل موخركيدل، د خاوند مراجعت ارخ ته محتاج كيدلو په وجه دى فَإِذَا لَمْ يُرَاجِعْهَا حَتَّى انْقَضَتِ الْعِدَّةُ نو هركله. چې خاوند د مراجعت اونكړو.تردې چې ( دعدت) موده تيره شوه ظَهَرَ أَنَّهُ لَا حَاجَةَ لَهُ نو ښكاره شوه.چه دې ته ( درجعت) ارتيا نه وو فَتَبَيَّنَ أَنَّ الْمُبْطِلَ عَمِلَ عَمَلَهُ مِنْ وَقْتِ وُجُودِهِ نو واضحه شوه.چه مبطل خپل عمل ددې د موندلو د وخت نه كړې دى وَلِهَذَا تُحْتَسَبُ الْأَقْرَاءُ مِنَ الْعِدَّةِ اوهم په دې وجه چې كوم حيضونه راغلي دى .هغه به په عدت كې حسابولې شى فَلَمْ يَمْلِكِ الزَّوْجُ الْإِخْرَاجَ نو خاوند بهر ته د بيولو (بوتللو) مالك نشو إِلَّا أَنْ يُشْهِدَ عَلَى رَجْعَتِهَا مگر دا چې خاوند ددې سره په رجعت كاوه باندې گواه جوړ كړى فَتَبْطُلُ الْعِدَّةُ نو عدت به باطل شى . وَيَتَقَرَّرُ مِلْكُ الزَّوْجِ او د خاوند ملك به ثابت شى

تشريح:- اوعقلى دليل دا دې چه طلاق ملك نكاحى باطلوى .نومناسب خودا وه.چه څنگه طلاق موجود شوې وو.اونكاح باطله شوې وه.خوددې حكم د عدت تيريدو پورې روستوكړې شوې دې.ددې لپاره كه خاوند رجعت كول غواړى .چه رجعت اوكړى .اوهركله چې خاوند رجعت اونكړلو.اوعدت تيرشو.نومعلومه شوه.چه خاوند ته د رجعت كولوحاجت نه وو.نومعلومه شوه.چه د نكاح باطلونكى يعنى طلاق عمل دهغه وخت نه پيل شوې دې.دكوم وخت نه چې طلاق واقع شوې وى .اوددې امله هغه حيض كوم چې دعدت تيريدو نه وړاندې تيرشوې وى .هغه به په عدت كې شمارلې شى .

نوهركله چې د طلاق د وجود په وخت كې نكاح باطله شوې ده.نودا ښځه د بائنه پشان شوې ده.نولكه څنگه چې د مطلقه بائنه سره سفر كاوه ممنوع دې.دغه ډول د دې مطلقه رجعيه سره هم سفركول ممنوع دې.البته دا چې خاوند دې ته رجعت اوكړى .اوگواهان جوړ كړى .نوعدت باطل شو.اودده د ښځې سره سفر كول به صحيح شى .

وَقَوْلُهُ حَتَّى يُشْهِدَ عَلَى رَجْعَتِهَا اود امام محمد رحمه الله قول «حتى يشهد على رجعتها» مَعْنَاهُ الِاسْتِحْبَابُ عَلَى مَا قَدَّمْنَا معنى مستحب كيدل دى .لكه چې موږ وړاندې بيان كړى دى .

تشريح:-صاحب دهدايه رحمه الله فرمائى .چه دامام محمد رحمه الله دقول نه چې «حتى يشهد على رجعتها» نه د رجعت استحباب مراد دې وجوب نه دې مراد،لكه څنگه چې دباب په پيل كې بيان شوى دى .

**په طلاق رجعى د وطى عدم حرمت**

| | |
|---|---|
| وَالطَّلَاقُ الرَّجْعِيُّ لَا يُحَرِّمُ الْوَطْءَ | او طلاق رجعى وطى نه حراموى |

تشريح:- په دې حكم كې اختلاف دې چه طلاق رجعى د ښځې سره وطى حراموى كه نه؟نود احنافو رحمهم الله په نيزطلاق رجعى دښځې سره وطى كول نه حراموى



وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللَّهُ: يُحَرِّمُهُ او امام شافعى رحمه الله فرمائى .چه دا حراموى لِأَنَّ الزَّوْجِيَّةَ زَائِلَةٌ لِوُجُودِ الْقَاطِعِ وَهُوَ الطَّلَاقُ خكه چې زوجيت كيدل زائل شو.دقاطع موجود كيدلو په وجه

تشريح:- .اودامام شافعى رحمه الله په نيزباندې حراموى .اوهم دا دامام احمد رحمه الله نه يوروايت دې. دليل دا دې چه دزوجيت د رشتې د امله وطى حلاله وه.اوچه قاطع د زوجيت يعنى طلاق رجعى د وجود د امله رشته د زوجيت ختمه شوه.نوخكه د مطلقه رجعيه سره وطى كول حرام دى .

وَلَنَا أَنَّهَا قَائِمَةٌ حَتَّى يَمْلِكَ مُرَاجَعَتَهَا مِنْ غَيْرِ رِضَاهَا او زمونږ دليل دادې چه زوجيت موجود دې.تردې چې ددې سره د مراجعت مالك دې.ددې د رضامندۍ نه بغير لِأَنَّ حَقَّ الرَّجْعَةِ ثَبَتَ نَظَرًا لِلزَّوْجِ خكه چې د رجعت حق د خاوند په لحاظ سره ثابت شوې دې

تشريح:-زمونږدليل دا دې.چه دطلاق رجعى نه روسته هم زوجيت قائم دې.اوهم دا وجه ده.چه د ښځې د رضا نه بغيرد خاوندته د رجعت كولواختيارشته.اوكه زوجيت ختم شوې وو.نودا ښځه به پردۍ وه.او پردۍ ښځې نه دهغې درضا نه بغيررجعت كول صحيح نه دې.

لِيُمْكِنَهُ التَّدَارُكُ عِنْدَ اعْتِرَاضِ النَّدَمِ چې د ندامت (خپيمانتيا ) پيښيدلو په وخت خاوند ته تدارك ممكن شو وَهَذَا الْمَعْنَى يُوجِبُ اسْتِبْدَادَهُ بِهِ او دا معنى د رجعت په حق سره د خاوند مستقل كيدل واجب كوى . وَذَلِكَ يُؤْذِنُ بِكَوْنِهِ اسْتِدَامَةً لَا إِنْشَاءً او د خاوند پخپله مستقل كيدل خبر وركوى .چه رجعت ملك د نكاح برابر پاته ساتل دى .نه دا چې دسره ( دوباره) پيدا كول إِذِ الدَّلِيلُ يُنَافِيهِ

حل اللغة* ① التدارك: رالاندې كول ② الندم: پښيمانتيا ③ القاطع: كټ كونكې ]

تشريح:-صاحب دهدايه رحمه الله په قيام د زوجيت باندې داسې استدلال كوى .اوفرمائى .چه خاوندته د رجعت حق ددې لپاره وركړې شوې دې.چه د پښيمانتيا په وخت كې هغه د خپلې غلطۍ تدارك كولې شى .حاصل دا چې خاوند ته د رجعت حق وركول شريعت په خاوند باندې د شفقت اومهربانۍ په وجه كړې دې. او خاوند ته د رجعت حق وركول ددې خبرې دليل دې.چه خاوند د رجعت په اړه كې مستقل دې.خكه كه خاوند د رجعت په اړه كې مستقل نه وو.نوپه ده باندې به شفقت اومهربانى مكمله نه وه.خكه چې كله داسې وى .چه ښځه په رجعت باندې راضى نه وى .نود رجعت حق چې خاوند ته حاصل دې.نودا ددې خبرې ثبوت دې.چه خاوند په حق د رجعيت كې مستقل دې.اوپه حق رجعيت كې د خاوند استقلال ددې خبرې دليل دې.چه رجعت د نكاح د بقاء نوم دې.د نكاح د ابتداء نوم نه دې.خكه چې كوم دليل په دې باندې دلالت كوى .چه خاوند په حق د رجعت كې مستقل دې.نوهغه دددې منافى دې.چه رجعت سره ابتداء د نكاح كيږى .خكه چې خاوند په ابتداء د نكاح كې منفرد او مستقل نه وى .(بلكه د ښځې اختياريعنى رضا په كې هم ضرورى دې.) نوثابته شوه.چه رجعت د بقاء نكاح نوم دې.اود نكاح د بقاء لپاره دا ضرورى ده.چه نكاح به وړاندې نه موجود وى .اوچه نكاح موجوده او قائم وى ..نووطى كول حرام نه وى .ددې امله زمونږ مذهب دا دې.چه طلاق رجعى وطى نه حراموى .

وَالْقَاطِعُ أَخَّرَ عَمَلَهُ إِلَى مُدَّةٍ إِجْمَاعًا او قاطع خپل عمل يوې مودې پورې بالاجماع مؤخر كړلو أَوْ نَظَرًا لَهُ عَلَى مَا تَقَدَّمَ، وَاللَّهُ أَعْلَمُ بِالصَّوَابِ خكه چې دليل ددې منافى دې. يا په خاوند باندې نظر كاوه سره.په دې بناء باندې چې وړاندې تيرشوى دى .

تشريح:-په «والقاطع أخره إلى أخره» سره د امام شافعى رحمه الله د دليل ځواب وركوى .چه قاطع يعنى د طلاق وجود د قيام زوجيت سره منافى دې.خكه چې دقاطع يعنى طلاق عمل په اتفاق سره د عدت تيريدو پورې په اجماع سره روستو شوې دې.يا په خاوند باندې د شفقت اومهربانۍ كولوپه غرض د طلاق عمل روستوكړې شوې دې.والله اعلم بالصواب.

## فصل فيما تحل به المطلقة

ژباړه:- (دا) فصل د داسې كارونو په بيان كښې دې. په كومو سره چې مطلقه حلاليږي

### په درې طلاقه بائنې سره دعدت نه روسته تجديدد نكاح

وَإِذَا كَانَ الطَّلَاقُ بَائِنًا دُونَ الثَّلَاثِ او چې كله ددرې نه كم طلاق بائن وي فَلَهُ أَنْ يَتَزَوَّجَهَا فِي الْعِدَّةِ وَبَعْدَ انْقِضَائِهَا نو خاوند ته اختيار دې.چه دې ښځې سره په عدت كې اود عدت تيريدلو نه روسته نكاح اوكړي

تشريح:- مصنف رحمه الله په وړاندينې دهغه صورتونوبيان اوكړل.چه په هغې كې د طلاق رجعي تدارك كيداې شو.اواوس په دې فصل كې دهغه صورتونوبيان كوي .چه دهغې په ذريعه دطلاق رجعي نه سوا د نورو طلاقونوتدارك كيداې شي.

①اولنې صورت دا دې.چه مطلقه په يوطلاق سره بائنه وي يا په دوو طلاقوسره،نوخاوندته اختياردې.چه هغه خپلې معتدې سره په .عدت كې نكاح اوكړي يا دعدت نه روسته ورسره نكاح اوكړي .دواړه صورتونه صحيح دي.

لِأَنَّ حِلَّ الْمَحَلِّيَّةِ بَاقٍ خكه چې د محل حلال كيدل پاته دي لِأَنَّ زَوَالَهُ مُعَلَّقٌ بِالطَّلْقَةِ الثَّالِثَةِ خكه چې د حلت زائل كيدل،په دريم طلاق باندې معلق دي فَيَنْعَدِمُ قَبْلَهُ معلق په شرط پورې د شرط د وجود نه وړاندې معدوم وي

تشريح:-دليل دا دې.چه محل (چه ښځه د آدم عليه السلام په اولاد كې ده.اوپه محرماتوكې نه ده)حلالوالى پاته دې.خكه چې د حلت زوال په دريم طلاق پورې معلق كړې دې.دالله تعالى د ارشاد((فَإِنْ طَلَّقَهَا فَلَا تَحِلُّ لَهُ)) د وجې.اومعلق په شرط پورې د شرط د وجود نه وړاندې معدوم وي .نود دريم طلاق د وجود نه وړاندې به د حلت زوال معدوم وي .نوچه دمحل حلالوالى ثابت شو.نود خاوند لپاره په عدت كې نكاح كول هم حلال دي .

وَمَنْعُ الْغَيْرِ فِي الْعِدَّةِ لِاشْتِبَاهِ النَّسَبِ اوپه عدت كې دغير( سره نكاح) ممنوع كيدل د نسب مشتبه كيدلو په وجه دي وَلَا اشْتِبَاهَ فِي إِطْلَاقِهِ او خاوند سره نكاح جائز ګرځولو كې هيڅ اشتباه نشته.

تشريح:-اوپه «منع الغير» سره داشكال ځواب دې.اشكال دا دې.چه تاد معتده سره د نكاح كولوكوم علت بيان كړلو.دا د نص په مقابله كې دې.خكه چې الله تعالى فرمائيلي دي ((وَلَا تَعْزِمُوا عُقْدَةَ النِّكَاحِ حَتَّى يَبْلُغَ الْكِتَابُ أَجَلَهُ))په دې آيت كې د مطلقې سره دنكاح كولونه مطلقاً منع شوې ده.اود نص په مقابله كې علت قابل قبول نه وي .نود خاوند لپاره هم په حالت دعدت كې نكاح كول ممنوع شوه.

ځواب دا دې.چه په آيت كې د معتدې سره د نكاح كولونه هغه څوك منع كړې شوې دې.چه خاوند نه وي .اوهرچه خاوند دې.نودې نه دې منع شوې.په دې باندې قرينه دا ده.چه دمعتدې سره د نكاح كاوه ممانعت په نسب كې د اشتباه راتلو په وجه ده.اوچه د خاوند سره نكاح اوشي .نوددې په كولوكې څه اشتباه نشته.خكه چې مختلفې اوبه (په يورحم كې) د خانې كيدو په وجه په نسب كې اشتباه متحقق كيږي .اودمختلف اوبوجمع كيدل په هغه وخت كې كيږي .چه د بل چا د معتدې سره نكاح اوكړې شي .نومعلومه شوه.چه د خپلې معتدې سره په نكاح كولوكې څه قباحت نشته.

### دطلاق مغلظ نه روسته د زوج اول لپاره بغيرد حلالې نه د نكاح حرمت

وَإِنْ كَانَ الطَّلَاقُ ثَلَاثًا فِي الْحُرَّةِ اوكه په آزاده ښځه كې درې طلاقه دي أَوْ ثِنْتَيْنِ فِي الْأَمَةِ يا په وينځه كې دوې (دوه) دي لَمْ تَحِلَّ لَهُ حَتَّى تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهُ نِكَاحًا صَحِيحًا نود خاوند لپاره حلال نه دي .تردې چې دوهم خاوند سره نكاح صحيحه اوكړي وَيَدْخُلَ بِهَا و ددې سره دا دخول هم اوكړي ثُمَّ يُطَلِّقَهَا بيا دې ته طلاق



وركړي أَوْ يَمُوتَ عَنْهَا يا( دا پريږدي او) مړ شي

تشريح:- مسئله دا ده.كه يوكس خپلې اصيلى ښځې ته درې طلاقه وركړل.يا نې وينځې ته دوې (دوه) طلاقه وركړل.نودا دده لپاره حلاله پاتې نشوه.تردې چې هغه د بل خاوند سره صحيح نكاح اوكړي .اوهغه پرې دخول هم اوكړي .اوبيا ورته يا طلاق وركړي .يا هغه مړ شي.

وَالْأَصْلُ فِيهِ قَوْلُهُ تَعَالَى او دليل په دې مسئله كې د الله تعالى قول دې {فَإِنْ طَلَّقَهَا فَلَا تَحِلُّ لَهُ مِنْ بَعْدُ حَتَّى تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهُ} نود خاوند لپاره دا د دريم طلاق نه روسته حلال پاتې نشوه.تردې چې دوهم خاوند سره نكاح اوكړي يعنى كه دې ته طلاق وركړي . فَالْمُرَادُ الطَّلْقَةُ الثَّالِثَةُ او( په آيت كې ) دريم طلاق مراد دې وَالثِّنْتَانِ فِي حَقِّ الْأَمَةِ كَالثَّلَاثِ فِي حَقِّ الْحُرَّةِ اود وينځې په حق كې دا داسې دي .لكه د آزادې په حق كې درې طلاقه لِأَنَّ الرِّقَّ مُنَصِّفٌ لِحِلِّ الْمَحَلِّيَّةِ عَلَى مَا عُرِفَ خكه چې رقيق كيدل محل حلال كيدل نصف كوي .لكه څنګه چې په اصول كې معلوم شوى دي

حل اللغة: ① الرق: غلامى ② منصف:نيمونكې]

تشريح:-د دې مسئلې لپاره دليل دقرآن پاك آيت ((فَإِنْ طَلَّقَهَا فَلَا تَحِلُّ لَهُ مِنْ بَعْدُ حَتَّى تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهُ)) دې. او په دې آيت كې د زياتومفسرينو رحمهم الله په نيزدريم طلاق مراد دې.اودوينځې په حق كې دوې [دوه] طلاقه داسې دي.لكه څنګه چې د آزادې لپاره درې طلاقه دي .يعنى لكه څنګه چې د آزدې په حق كې د درې طلاقوسره حرمت غليظه ثابتيږي .دغه ډول د وينځې په حق كې په دوو طلاقو سره حرمت غليظه ثابتيږي .

دليل دا دې.چه د رقيت په وجه عذاب نيم پاتې كيږي .دالله تعالى ارشاد دې.((فَإِنْ أَتَيْنَ بِفَاحِشَةٍ فَعَلَيْهِنَّ نِصْفُ مَا عَلَى الْمُحْصَنَاتِ مِنَ الْعَذَابِ)) يعنى كه وينځې زنا اوكړي .نوپه دوى باندې به دهغه عذاب يعنى سزا په نيمه باندې وي .كومه چې په آزدو ښځو وي .نولكه څنګه چې رقيت د عذاب اوسزا نيمولو سبب دې.دغه ډول د نعمت اونيمولو سبب هم دې.اودمحل حلالوالى نعمت دې.نود وينځې لپاره پكار دا وه.چه په يونيم طلاق باندې حرمت غليظه ثابتيدل.خوچونكه طلاق ويش نه قبلوي .نوځكه هغه نيم به هم پوره حسابيږي .اود وينځې مالك به د دوو طلاقو مالك وي .

ثُمَّ الْغَايَةُ نِكَاحُ الزَّوْجِ مُطْلَقًا بيا انتهاء ( غايت) مطلقاً د دوهم خاوندنكاح ده وَالزَّوْجِيَّةُ الْمُطْلَقَةُ إِنَّمَا تَثْبُتُ بِنِكَاحٍ صَحِيحٍ او مطلق زوجيت په نكاح صحيح سره ثابتيږي

تشريح:-صاحب دهدايه رحمه الله فرمائي .چه د دوهم خاوند سره صحيح نكاح كول خكه ضروري ده.چه په آيت ((حَتَّى يَبْلُغَ الْكِتَابُ أَجَلَهُ)) كې غايت يعنى د دوهم خاوند سره نكاح كول مطلق ده.د صحت يا فساد په قيد سره مفيده نه ده.اومطلق چې كله ذكرشي .نومراد ترې فرد كامل وي .نودلته د زوجيت مطلقه نه زوجيت كامله مراد دې.اوزوجيت كامله په صحيح نكاح سره ثابتيږي .ددې امله موږ د حلاله لپاره د صحيح نكاح شرط اولګولو.

وَشَرْطُ الدُّخُولِ ثَبَتَ بِإِشَارَةِ النَّصِّ اود دخول شرط په اشارة النص سره ثابت دې وَهُوَ أَنْ يُحْمَلَ النِّكَاحُ عَلَى الْوَطْءِ حَمْلًا لِلْكَلَامِ عَلَى الْإِفَادَةِ دُونَ الْإِعَادَةِ او اشارة النص دادې.چه نكاح په وطى باندې محمول كړې شي .كلام په افاده باندې محمول كاوه سره.نه په اعاده باندې إِذِ الْعَقْدُ اسْتُفِيدَ بِإِطْلَاقِ اسْمِ الزَّوْجِ خكه چې عقد خو په لفظ زوج ونيلو نه مستفاد دې

حل اللغة: ① الافادة: فائده وركول ② الاعادة: واپس كول ]

تشريح:-اود دوهم خاوند ددې ښځې سره وطى كول شرط ګرځولې شوې دې.يا په اشارة النص يا په حديث مشهوره سره،د اشارة النص په صورت كې به تقرير دا وي .چه په آيت ((حَتَّى تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهُ)) نكاح د وطى په

معنى باندې حمل کړې شی .نه د عقد په معنی باندې.څکه چې آیت کې دعقد معنی د «زوجا غیره» نه مستفاد ده.څکه چې يوكس بغیرد عقد نه دوهم خاوند نشی جوړیدې.نوکه د «تنکح» د لفظ نه د عقد نکاح مراد واخستې شی .نوبه کلام کې به تاکید وی .اوکه لفظ د نکاح په وطی باندې حمل کړې شی .نوبه آیت کې به تاسیس وی .اودا قاعده ده.چه «الإفادة خیر من الإعادة» یعنی تاسیس بهتر دی د تاکید نه،ددې املە موږ په آیت کې لفظ دنکاح په وطی باندې حمل کوو.نوبه دې تقریرسره د زوج ثانی وطی کول ثابتیږی .

**أَوْيُزَادُ عَلَى النَّصِّ بِالْحَدِيثِ الْمَشْهُورِ**،یا په حدیث مشهور سره به په نص باندې زیاتوالې کولای شی **وَهُوَ قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** او حدیث مشهور د نبی کریمﷺ قول «لا تحل للاول......الحدیث» دې {**لَا تَحِلُّ لِلْأَوَّلِ حَتَّى تَذُوقَ عُسَيْلَةَ الْآخَرِ**}(۱) یعنی مطلقه ثلاثه د ړومبی خاوند لپاره حلال نه ده.تردې چې دا د دوهم مزه وانخلی **رُوِيَ بِرِوَايَاتٍ**(دا حدیث) په مختلف روایاتو سره رانقل دې

**حل اللغة:** ① تذوق: اوڅکی ② عسیلة ګبین ګوټې مراد ترې جماع کول دی ]

**تشریح:-** اود حدیث نه د دخول شرط په دې طریقه ثابتیږی .چه رفاعه د نبی ﷺ په زمانه کې خپلې بی بی ته درې طلاقه ورکړی وو.بیا هغې د عبدالرحمن بن زبیر سره نکاح اوکړله.بیا نبی ﷺ ته راغله.اوورته ئې عرض اوکړلو.یارسول الله ماته رفاعه درې طلاقه راکړی وو.نوما د عبدالرحمن بن زبیر سره نکاح اوکړله.خوما هغه نامرده بیا موندلو.نبی ﷺ ورته اوفرمائیل.آیا ته دا اراده لرې.چه رفاعه ته راواپس شې؟ هغې اوونیل.آو زما اراده هم دا ده.نونبی ﷺ ورته اوفرمائیل.«لا حتی تذوقی عسیلته ویذوق عسیلتك» یعنی نشې واپس کیدې.تردې چې ته دهغې نه مزه واخلې.اوهغه ستا نه مزه واخلی .په دې سره د وطی نه کنایه وه. نودې حدیث نه ثابته شوه.چه د حلاله لپاره د دوهم خاوند وطی کول شرط دې.اودا حدیث مشهور دې.اوپه حدیث مشهور په کتاب الله باندې زیادت جائزدې.نوکه په آیت کې د «حتی تنکح» نه وطی مراد واخستې شی .نودا آیت به په دې حدیث مشهور سره مقید کړې شی .

**وَلَا خِلَافَ لِأَحَدٍ فِيهِ سِوَى سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ**.او په دې کې د هیڅ چا اختلاف نشته.علاوه د سعید بن المسیب، **وَقَوْلُهُ غَيْرُ مُعْتَبَرٍ** اود سعیدبن المسیب قول غیرمعتبر دې **حَتَّى لَوْ قَضَى بِهِ الْقَاضِي لَا يَنْفُذُ** تردې که قاضی په ده باندې فیصله ورکړله.نو نافذ به نه وی

**تشریح:-** صاحب دهدایه فرمائی .چه د دخول په شرطیت کې د سعید بن مسیب نه سوا د بل هیڅ چا اختلاف نشته.اودمشهور حدیث د املە د سعید بن مسیب قول غیرمعتبر دې.تردې که یوقاضی دسعید بن مسیب په قول باندې فیصله اوکړله.نودهغه فیصله به نافذ نه وی .اوکه یومفتی په دې باندې فتوی ورکړله.نوپه هغه دې دالله تعالی لعنت د فرښتو لعنت اود ټولو خلګو لعنت وی .(عینی شرح هدایه)

**وَالشَّرْطُ الْإِيلَاجُ دُونَ الْإِنْزَالِ** اوشرط ادخال دې.انزال نه دې **لِأَنَّهُ كَمَالٌ وَمُبَالَغَةٌ فِيهِ** څکه چې انزال په دخول کې کمال او مبالغه ده **وَالْكَمَالُ قَيْدٌ زَائِدٌ** اود کمال قید زائد دې

**حل اللغة:** ① الایلاج: داخلول ]

**تشریح:-** اود زوج اول لپاره د مطلقه ثلاثه حلالوالې په دې شرط کیږی .چه زوج ثانی دښځې په شرمګاه کې حشفه داخله کړی .دانزال یعنی د منی خروج شرط نه دې.دلیل دا دې چې په انزال او ادخال کې کمال اومبالغه ده.اوکمال زیاتی قید دې.د دلیل نه بغیرنه ثابتیږی .والله اعلم بالصواب

**په تحلیل کې د مراهق هلک حکم**

۱) من حديث عائشة رضي الله عنها أخرجه البخارى فى الطلاق باب ٤ رقم ٥٢٦١ ومسلم فى النكاح رقم ١١٥ وأبوداود فى الطلاق بب ٤٩ رقم ٢٣٠٩ والنسائى فى الطلاق باب ٩ رقم ٣٠٧٦٦ وابن ماجه فى النكاح باب ٣٢ رقم ١٩٣٢)_



**وَالصَّبِيُّ الْمُرَاهِقُ فِي التَّحْلِيلِ كَالْبَالِغِ لِوُجُودِ الدُّخُولِ فِي نِكَاحٍ صَحِيحٍ** اوکوم ماشوم چې قریب البلوغ وی .دا په حلاله کولوکې د بالغ پشان دې.په نکاح صحیح کې د دخول موندلو په وجه **وَهُوَ الشَّرْطُ بِالنَّصِّ** اوهم دا شرط دې د نص حدیث په وجه

**حل اللغة:** ① الصبی: ماشوم ② المراهق: قریب البلوغ ، یعنی بلوغ ته نزدې شوې وی ]

**تشریح:-** فرمائی .چه مراهق هلك چې مطلقه ثلاثه د اول خاوند لپاره حلالوی .نودا د بالغ پشان دې.چه په صحیح نکاح کې دخول موجود شو.اود تحلیل لپاره په نص یعنی ((حَتَّىٰ تَنكِحَ زَوْجًا غَيْرَهُ)) کې هم دا شرط دې.

**وَمَالِكٌ رَحِمَهُ اللَّهُ يُخَالِفُنَا فِيهِ**،اود مراهق په مسئله کې امام مالك زموږ مخالف دې **وَالْحُجَّةُ عَلَيْهِ مَا بَيَّنَّاهُ** او ددوی خلاف حجت هم هغه دلیل دې.کوم چې موږ بیان کړې دې

**تشریح:-** اودمراهق په مسئله کې امام مالك زموږ مخالفت کوی .یعنی امام مالك فرمائی .چه د مراهق حلاله معتبر نه ده.څکه چې دهغوی په نیز په حلاله کې صرف ادخال کافی نه دې.بلکه انزال شرط دې. او انزال د مراهق نه متصور نه دې.نوددې املە په حلاله کې مراهق هلك د بالغ په حکم کې نه دې.
خودامام مالك خلاف هغه دلیل حجت دې.کوم چې موږ وړاندې بیان کړلو.د دلیل سابق نه مراد د مصنف دا قول دې.چه «لأنه کمال ومبالغة» او اترازی فرمائیلی دی .چه دامام مالك خلاف آیت ((حَتَّىٰ تَنكِحَ زَوْجًا غَيْرَهُ)) حجت دې.اوامام کاکی فرمائیلی دی .چه دامام مالك خلاف حجت د عسیله حدیث دې.

**وَفَسَّرَهُ فِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ** او امام محمد په جامع صغیرکې د مراهق تفسیرکړې دې **وَقَالَ: غُلَامٌ لَمْ يَبْلُغْ** او وئیلی ئې دی .چه کوم هلك بالغ شوې نه وی **وَمِثْلُهُ يُجَامِعُ** حالانکه داسې کس جماع کولای شی **جَامَعَ امْرَأَتَهُ** ده یوې ښځې سره جماع اوکړله **وَجَبَ عَلَيْهَا الْغُسْلُ** نوپه دې ښځه به غسل واجب وی **وَأَحَلَّهَا عَلَى الزَّوْجِ الْأَوَّلِ** اودا ښځه په ړومبی خاوند باندې حلاله شوه

**تشریح:-** په جامع صغیرکې امام محمد دمراهق تفسیر دا کړې دې.هغه هلك چې لا تراوسه پورې بلوغ ته نه وی رسیدلې.حالانکه دده پشان هلك جماع کولې شی .
صاحب دهدایه فرمائی .که مراهق د یوې ښځې سره جماع اوکړله.نوپه هغې باندې غسل واجبږی .اوکه هغه د یوکس مطلقه ثلاثه وه.نودمراهق دجماع نه روسته اولنی خاوند لپاره حلالیږی .خوپه دې شرط چې دمراهق دا ړخه ورته طلاق ورکړې شی .اودا ښځه عدت پوره کړی .

**وَمَعْنَى هَذَا الْكَلَامِ أَنْ تَتَحَرَّكَ آلَتُهُ وَيَشْتَهِي** او د امام محمد ددې کلام مطلب دادې.چه دده خاص اندام حرکت کوی .او خواهش کوی

**حل اللغة:** ① یتحرک: خوزیږی ،حرکت کوی ② یشتهی: اشتهاء ئې کیږی ،شوق ئې کیږی ]

**تشریح:-** دمراهق په تفسیر کې دامام محمد د قول تفسیر دا دې.چه دمراهق عضوتناسل حرکت کولې شی .اوجماع ارخ ته راغب کیږی .اودا شرط ئې ددې املە اولګولو.چه نبی ﷺ د ذوق شرط د دواړو طرفونو نه لګولې دې.اوخنبل بغیرد اشتهاه او شوق نه نه کیږی .

**وَإِنَّمَا وَجَبَ الْغُسْلُ عَلَيْهَا لِالْتِقَاءِ الْخِتَانَيْنِ** او په ښځه غسل واجب شو.د دواړو د ختان( شرمګاه) ملاویدلو په وجه **وَهُوَ سَبَبٌ لِنُزُولِ مَائِهَا** اوهم دا دښځې د منی راکوزیدلو سبب دې **وَالْحَاجَةُ إِلَى الْإِيجَابِ فِي حَقِّهَا** اود( غسل ) وجوب اړتیا صرف د ښځې په حق کې دې

**حل اللغة:** ① الختان: په ذکر او فرج کې سنت کړې شوې ځائې یعنی کټ کړې شوې ځائې]

**تشریح:-** اوپه ښځه به په خصوصیت سره غسل واجبیږی .ځکه چې التقاء ختانین واقع شوي دي.اودا واړه سبب دي.د ښځې د منی نازلیدو،نوسبب (التقاء ختانین) ئې د باطنی سبب (انزال) قائم مقام اوګرځولو.اود غسل حکم ئې پرې اولګولو.

**اَمَّا لَاغُسْلَ عَلَى الصَّبِيِّ وَإِنْ كَانَ يُؤْمَرُ بِهِ تَخَلُّقًا** لیکن په ( مراهق) هلك باندې ( غسل ) واجب نه دي.اګرچه ده ته د عادت ور کاوه حکم ورکړې شوي دي.

**تشریح:-** اودغسل د جوب اړتیا د ښځې په حق کې دي.اوپه مراهق باندې غسل واجب نه دي.ځکه چې هغه د شریعت داحکامو مکلف نه دي.اګرچه ده ته دې دغسل حکم ورکولې شي .چه دغسل کولوعادت ئې جوړ شي .

## دتحلیل لپاره د مولی خپله وینځه وطی کول

**قَالَ** قدوری رحمه الله فرمائی **وَوَطْئُ الْمَوْلَى أَمَتَهُ لَا يُحِلُّهَا** چې د مولا خپلې وینځې سره وطی کول دانشی حلالولې **لِأَنَّ الْغَايَةَ نِكَاحُ الزَّوْجِ** ځکه چې غایت د نکاح زوج دي

**تشریح:-** صورت د مسئلې دا دي.چه یو خاوند خپلې ښځې ته (کومه چې د بل وینځه وی ) طلاق ورکړلو اوعدت تیریدونه روسته خپل مولی هغې سره وطی اوکړله.نودا ښځه داولنی خاوند لپاره حلاله نه ده.

دلیل دا دي.چه په آیت ((حَتّٰى تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهُ)) کې دحرمت غایت انتهاء د زوج ده.اومولی ته زوج نشي ونیلې.ددې امله د مولی وطی د زوج اول لپاره حلت نشي پیدا کولې.په یوروایت کې بیان شوی دی .یوځل دحضرت عثمان رضی الله عنه نه ددې په اړه کې پوښتنه اوشو.چه د یومولی خپلې وینځې سره وطی کول د اولنی خاوند لپاره حلت ثابتولې شی که نه؟اود حضرت عثمان رضی الله عنه سره حضرت زید بن ثابت اوحضرت علی رضی الله عنه هم وو.نوحضرت عثمان اوزیدبن ثابت $ ددې اجازت ورکړلو.اودا ئې اوونیل.چه مولی هم د زوج پشان دي.نوحضرت علی رضی الله عنه ددې دواړو حضراتوپه خبره باندې خفه شو.او پاسیدلو.اوخفګان اظهارئې داسې اوکړلو. «لیس بزوج» یعنی مولی زوج نه دي.

**وَإِذَا تَزَوَّجَهَا بِشَرْطِ التَّحْلِيلِ** اوکه یوه ښځه د تحلیل په نیت سره په نکاح واخستله **فَالنِّكَاحُ مَكْرُوهٌ لِقَوْلِهِ ﷺ** نو (دا) نکاح مکروه ده.دنبی کریم ﷺ فرمان «لعن الله.....الحدیث» په وجه **لَعَنَ اللّٰهُ الْمُحَلِّلَ وَالْمُحَلَّلَ لَهُ**[1] یعنی الله تعالی دې لعنت اوکړی په حلاله کونکی باندې او( په هغه کس) دچا لپاره چې حلاله اوکړې شوه **وَهٰذَا هُوَ مَحْمَلُهُ** اوهم دا ددې حدیث محمل دي

**حل اللغة:** ① التحلیل: حلالوالې ]

**تشریح:-** اوکه یوکس د هغه ښځې سره دتحلیل په شرط باندې نکاح اوکړله.چه دهغې په حق کې حرمت غلیظه ثابت شوې وی .مثلاً ونې ونیل. «تزوجتك على أن أحللك» یعنی چې ماتاسره نکاح اوکړله.په دې شرط چې تا د اول خاوند لپاره حلاله کړم.نودا نکاح مکروه ده.

دلیل د نبی ﷺ قول دې.چه الله تعالی دې لعنت اوکړی .په حلاله کونکی اود چا لپاره چې حلاله کولې شی .اوحدیث محمل هم دا دي.ددې امله که دتحلیل شرط ئې په زړه کې پټ کړې وی .اوپه ژبه باندې ئې اونه وائی .نومستحق د لعنت به نه وی .

**فَإِنْ طَلَّقَهَا بَعْدَمَا وَطِئَهَا** بیا که ده د وطی نه روسته دې ښځې ته طلاق ورکړو **حَلَّتْ لِلْأَوَّلِ**[2] نود اول خاوند

1) من حدیث ابن مسعود رضی الله عنه اخرجه الترمذی فی النکاح باب ۲۷ رقم ۱۱۲۰ والنسائی فی الطلاق باب ۱۳ رقم ۳۱۹۸)

2) القول الراجح هو قول أبی حنیفة رحمه الله كذا فی فتح القدیر(۲۴/۴) والدرالمختار(۵۸۶/۲) والهندیة (۴۷۵/۱) نقلاً عن القول الراجح (۳۴)-



لپاره به حلال وی . **لِوُجُودِ الدُّخُولِ فِي نِكَاحٍ صَحِيحٍ** ځکه چې دخول کول په نکاح صحیح کې اوموندې شو **إِذِ النِّكَاحُ لَا يَبْطُلُ بِالشَّرْطِ** ځکه چې په شرط سره نکاح نه باطلیږی

**تشریح:-** اوکه چا د تحلیل په شرط باندې نکاح اوکړله.اوبیا ئې د وطی نه روسته دغه ښځې ته طلاق ورکړلو.نودا ښځه به د اولنی خاوند لپاره حلاله شی .دلیل دا دې.چه په صحیح نکاح کې دخول واقع شو.اود تحلیل لپاره شرط هم دا دې.

پاتې شوه دا خبره چې د تحلیل په شرط باندې نکاح صحیح ده که نه ده؟① نوموږ وایو.چه نکاح صحیح ده.ځکه چې د شروط فاسده په وجه نکاح نه فاسدیږی

**وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ** رحمه الله **أَنَّهُ يُفْسِدُ النِّكَاحَ** اود ابویوسف رحمه الله نه روایت دې.چه نکاح فاسدیږی **لِأَنَّهُ فِي مَعْنَى الْمُؤَقَّتِ فِيهِ** ځکه چې دا نکاح د مؤقت په معنی کې ده **وَلَا يُحِلُّهَا عَلَى الْأَوَّلِ لِفَسَادِهِ** اودا نه حلالیږی .په ړومبی باندې د نکاح فاسد کیدلو په وجه

**تشریح:-** اودامام ابویوسف رحمه الله نه یو روایت دا دې.چه د تحلیل په شرط سره نکاح کول فاسده ده.ځکه چې دا د نکاح موقته په شانْ ده.لکه چې ده دا اوونیل. «تزوجتك إلى وقت كذا» یعنی تاسره د فلانی وخته پورې نکاح کوم.اونکاح موقته فاسده ده. نو ځکه نکاح په شرط د تحلیل سره هم فاسده ده.اوچه دا نکاح فاسده شوه.نودا ښځه د اولنی خاوند لپاره حلاله نه ده.ځکه چې د حلاله لپاره صحیح نکاح شرط ده.

**وَعَنْ مُحَمَّدٍ** رحمه الله **أَنَّهُ يَصِحُّ النِّكَاحُ لِمَا بَيَّنَّا** اود امام محمد رحمه الله نه وروایت دې.چه نکاح صحیح کیږی .د هغه دلیل په وجه چې موږ بیان کړو **وَلَا يُحِلُّهَا عَلَى الْأَوَّلِ** او په ړومبی زوج باندې دا نه حلالوی **لِأَنَّهُ اسْتَعْجَلَ مَا أَخَّرَهُ الشَّرْعُ** ځکه چې شریعت کوم شی موخر کړې وو.هغه ده په جلتۍ سره اوکړو **فَيُجَازَى بِمَنْعِ مَقْصُودِهِ كَمَا فِي قَتْلِ الْمُوَرِّثِ** نو ده ته به بدله ورکولې شی .دده په مقصود منع کولو.لکه څنګه چې د مورث په قتلولو کې (کیږی ).

**تشریح:-** دامام محمد رحمه الله نه یوروایت دا دې.چه په شرط دتحلیل سره نکاح کول صحیح خوده.ځکه چې په شروط فاسده سره نکاح نه باطلیږی .خود اولنی خاوند لپاره دا ښځه نه حلالیږی .دلیل دا دې.چه شریعت کوم څیزروستو کړې وو.ده دهغې په جلتۍ سره دحاصلولو کوښښ اوکړلو.ځکه چې نکاح د واړه عمر لپاره منعقد کیږی .نوددې تقاضا دا ده.چه دا ښځه د دوهم خاوند د مرګ نه روسته د اولنی خاوند لپاره حلاله کیده.خوچه د تحلیل شرط ئې اولګولو.نودا کوښښ ئې اوکړلو.چه حلت زرحاصل شی .نودده مقصود به بند کړې شی .اوداول خاوند لپاره به نشی جائز کولې.لکه څنګه چې څوك خپل مورث قتل کړی .نودا کس به د میراث نه محروم کولې شی .ځکه چې کوم شی شریعت روستوکړې وو.دې قاتل دهغې څیززرد حاصلولو کوښښ اوکړلو.

## په یویا دوو طلاقوسره مطلقه د زوج ثانی نه اول ته واپس کیدل

**وَإِذَا طَلَّقَ الْحُرَّةَ تَطْلِيقَةً أَوْ تَطْلِيقَتَيْنِ** اوکله چې یوسړی آزادې ښځې ته یوځل دوې [دوه] طلاقه ورکړل **وَانْقَضَتْ عِدَّتُهَا** او ددې عدت تیرشو **وَتَزَوَّجَتْ بِزَوْجٍ آخَرَ** او دې ښځې یو بل خاوند سره نکاح اوکړله. **ثُمَّ عَادَتْ إِلَى الزَّوْجِ الْأَوَّلِ** بیا دا ښځه ړومبی خاوند ته واپس راغله **عَادَتْ بِثَلَاثِ تَطْلِيقَاتٍ** (نو دا ښځه به) درې طلاقو سره واپس کیږی . **وَيَهْدِمُ الزَّوْجُ الثَّانِي مَا دُونَ الثَّلَاثِ كَمَا يَهْدِمُ الثَّلَاثَ** او دوهم خاوند به د درې ( طلاقو) نه کم داسې ختم کړی .لکه څنګه چې درې ختم (کړې شوی ) **وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُمَا اللّٰهُ** اودا حکم د شیخینو رحمهما الله په نیز دې

**حل اللغة:** ① یهدم: نوړوی ]

تشریح:- مسئله دا ده.چه یوکس خپلې ازادې ښځې ته یو یا دوې [دوه] طلاقه ورکړل.اودعدت تیریدونه روسته هغې د بل خاوند سره نکاح اوکړله.اودهغه د طلاق اوعدت تیریدونه روسته دې د اولنی خاوند سره نکاح اوکړله.نودا ښځې به خپل اولنی خاوند ته په درې طلاقوسره واپس کیږی .یعنی اولنی خاوند به د ابتداء نه د درې طلاقو مالك وی .ځکه چې د دوهم خاوند درې طلاقه د اولنی خاوند یو اودوې [دوه] طلاقه داسې ختموی .لکه څنګه چې درې طلاقه ختموی .دا د شیخینو رحمهما الله مذهب دی.

وَقَالَ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللهُ: لَا يَهْدِمُ مَا دُونَ الثَّلَاثِ (١) او امام محمد رحمه الله فرمائی .چه ( دوهم خاوند ) د دریو نه کم نشی منهدم کولې لِأَنَّهُ غَايَةٌ لِلْحُرْمَةِ بِالنَّصِّ دامام محمد رحمه الله دلیل دادې.چه دوهم خاوند د حرمت انتهاء ده.په نص د قرآن سره شو فَيَكُونُ مُنْهِيًا نو دوهم خاوند حرمت غلیظه ختمونکې وَلَا إِنْهَاءَ لِلْحُرْمَةِ قَبْلَ الثُّبُوتِ او حرمت ختمول ( د حرمت غلیظ) دثبوت نه وړاندې نشی کیدلې

تشریح:-اودامام محمد رحمه الله فرمائی .چه زوج ثانی د درې طلاقونه کم نه ختموی .بلکه اولنې خاوندبه په دریوکې چې څو پاتې وی .دهغې مالك وی .یعنی که اول نې یوطلاق ورکړې وی .نواوس به د پاته دوو مالك وی . اوکه اول نې دوې [دوه] طلاقه ورکړې وی .نواوس به دپاته یومالك وی .هم دا قول دامام زفراوامام شافعی رحمهما الله هم دی.

دامام محمد رحمه الله دلیل دا دی.چه دالله تعالی په قول ((فَإِنْ طَلَّقَهَا فَلَا تَحِلُّ لَهُ مِنْ بَعْدُ حَتَّىٰ تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهُ)) کې د ((فَلَا تَحِلُّ)) نه حرمت غلیظه مراد دی.اوددې حرمت غلیظه غایت اونهایت د دوهم خاوند سره نکاح کول دی .ځکه چې کلمه د «حتی» د غایت لپاره وضع شوې ده.اومغیادغایت سره ختمیږی . نو ثابته شوه.چه د دوهم خاوند سره نکاح کول حرمت غلیظه ختموی .اود حرمت غلیظه د ثبوت نه وړاندې دحرمت د ختمولوڅه معنی نشته.نود درې طلاقو نه د کمو په صورت کې د زوج ثانی وطی کول غیر معتبر دی .ځکه چې په دې صورت کې حرمت غلیظه نه دی ثابت،اوکله چې په دې صورت کې حرمت غلیظه ثابت نشو.نود دوهم خاوند وطی کول ددې لپاره غایت نشی جوړیدې.نوثابته شوه.چه د دوهم خاوند د درې طلاقو نه کم نشی ختمولې.اوچه د دریو نه کم نه ختمیږی .نواولنې خاوند به د دوهم خاوند سره د نکاح اوطلاق نه روسته د درې طلاقو مالك نه وی .بلکه په لومړنی نکاح کې چې څوطلاقه پاته پاتې شوی وو.دهغې مالك به وی .که یو وی اوکه دوه.

وَلَهُمَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {لَعَنَ اللهُ الْمُحَلِّلَ وَالْمُحَلَّلَ لَهُ} سَمَّاهُ مُحَلِّلًا اود شیخینو رحمهما الله دلیل دادې.چه نبی کریم ﷺ دوهم خاوند ته حلاله کونکې ونیلی دی وَهُوَ الْمُثْبِتُ لِلْحِلِّ او حلاله کونکې هغه کس دی.چه حلت ثابت کړی.

تشریح:-اودشیخینو رحمهما الله دلیل د نبی ﷺ ارشاد دی.« لعن الله المحلل والمحلل له» په دې حدیث باندې طریقه د استدلال دا ده.چه محدثینو رحمهم الله دا حدیث په «باب ما جاء في الزوج الثاني» کې راوړې دی.نود محلل څخه به مراد دوهم خاوند وی .لکه چې نبی ﷺ د دوهم خاوند نوم محلل کیخودلو.اود محلل معنی ده حلت ثابتونکې.اوس پاتې شوه دا خبره چې د دوهم خاوند په وجه چې کوم حلت ثابتیږی .نوهغه سابقه حلت دې اوکه نوې حلت،سابقه حلت خو کیداې نشی .ځکه چې بیا خو تحصیل د حاصل راځی .نونوې حلت متعین شو.اودا هم ضروری ده.چه حل جدید داول نه سوا وی .اوحل اول ناقص شوې وو.نو دوهم حلت به کامل وی .اوکامل حلت وی چې د درې طلاقو مالك وی .نوثابته شوه.چه اولنې خاوند د ابتداء نه د درې طلاقو مالك دې.برابره ده که اولنی خاوند ورته درې طلاقه ورکړې وی اوکه ددې نه کم.دواړه برابر دی .

(١) القول الراجح هو قول محمد رحمه الله كذا في فتح القدير (٣٧\٤) وردالمحتار(٥٨٩\٢) والعناية على هامش الفتح (٣٦\٤) نقلاً عن القول الراجح (٣٣٣\١)_



## د مطلقه ثلاثه د دوهم خاوند نه د طلاق اوعدت نه روسته داولنی لپاره حلالیدل

وَإِذَا طَلَّقَهَا ثَلَاثًا او که سړی ( خپلې آزادې ښځې ته ) درې طلاقه ورکړل فَقَالَتْ قَدِ انْقَضَتْ عِدَّتِي بیا څه موده روسته ) ده اوونیل چې زما عدت تیرشوې دې وَتَزَوَّجْتُ او ما ( دوهم خاوند سره ) نکاح اوکړه وَدَخَلَ بِي الزَّوْجُ او دوهم خاوند ما سره دخول هم کړې دې وَطَلَّقَنِي او ده ماته طلاق راکړې دې وَانْقَضَتْ عِدَّتِي و زماعدت تیرشوې دې وَالْمُدَّةُ تَحْتَمِلُ ذَلِكَ او حال داچه مدت ددې ټولو خبرو احتمال هم لری جَازَ لِلزَّوْجِ أَنْ يُصَدِّقَهَا نود ړومبی خاوند لپاره جائزدی .چه ددې تصدیق اوکړی إِذَا كَانَ فِي غَالِبِ ظَنِّهِ أَنَّهَا صَادِقَةٌ چې دده غالب ګمان دا وی .چه دا ښځه رښتونې ده

تشریح:- صورت د مسئلې دا دې.چه یوکس خپلې آزادې ښځې ته درې طلاقه ورکړل.څه مودهٔ روسته ښځې اوونیل.چه زما عدت تیرشوې دې.اوما د دوهم خاوند سره نکاح هم کړې ده.اوهغه راته طلاق راکړې دې.اودهغه نه مې عدت هم تیرشوې دې.اودا ښځه چې کوم شیان (څیزونه ) یادوی .په دغه موده کې د دې د واقع کیدوامکان هم وی .نوداولنی خاوند لپاره دا جائزدی .چه ددې ښځې تصدیق اوکړی. خوچه غالب ګمان دا وی .چه دا ښځه رښتینې ده.

لِأَنَّهُ مُعَامَلَةٌ ځکه چې دا معامله ده أَوْ أَمْرٌ دِينِيٌّ لِتَعَلُّقِ الْحِلِّ بِهِ یا امر دینی ددې سره د حلت متعلق کیدو په وجه وَقَوْلُ الْوَاحِدِ فِيهِمَا مَقْبُولٌ اود یو مسلمان قول په دې دواړو کې قبلیږی وَهُوَ غَيْرُ مُسْتَنْكَرٍ إِذَا كَانَتِ الْمُدَّةُ تَحْتَمِلُهُ اود ښځې دا خبر ورکول قابل انکار هم نه دی .چه موده ددې احتمال هم لری

تشریح:-دلیل دا دې.چه نکاح معامله ده.یا امردینی دې.معامله خو ځکه ده.چه بضع په وخت د دخول کې متقومه وی .اوامردینی ځکه دې.چه د نکاح سره حلت متعلق وی .اوپه دې دواړوکې د مسلمان قول قبلولې شی .

په دیانت کې د یومسلمان قول ددې امله قبلولې شی .چه صحابه کرامو رضی الله عنهم به د یوعادل خبر قبلولو. غیر د اشتراط عدد نه(یعنی د یونه د زیاتوکسانوشرط په کې نه وو)

اومعاملات په دوې [دوه] قسمه دی .یوهغه چې په هغې کې د الزام معنی نه وی .لکه وکالت په دې کې د یوکس خبر معتبر وی .که عادل وی که فاسق که ماشوم وی که بالغ،که مسلمان وی اوکه کافر،که آزاد وی که غلام،که مذکروی اوکه مونث،نه عدد شرط دې اونه عدالت، دوهم هغه دی .چه په هغې کې د الزام معنی موجوده وی .لکه حقوق العباد ،په دې کې عدد ،عدالت اولفظ د شهادت ضروری دی . بهرحال په دې مسئله کې د یوې شخې خبرقابل انکار نه دی.بیا چې مودهٔ هم ددې احتمال لری .

وَاخْتَلَفُوا فِي أَدْنَى هَذِهِ الْمُدَّةِ او عالمانو ددې مودې په کمتره موده کې اختلاف کړې دې وَسَنُبَيِّنُهَا فِي بَابِ الْعِدَّةِ اودا به موږ په باب العدت کې بیانوو.

تشریح:-اوس پاتې شوه دا خبره چې دا واړه کارونه کم ازکم په څومره مودهٔ کې کیداې شی .نوپه دې مسئله کې د امت د فقهاؤ رحمهم الله اختلاف دې.علامه مرغینانی رحمه الله ددې اختلاف په باب العدهٔ کې د بیانولووعده کړې ده.حالانکه حقیقت دا دې.چه د صاحب هدایه رحمه الله د اړخه په باب العدهٔ کې دا وعده نه ده پوره شوې کیداې چې د وعدې کولونه روسته ترې ذهول (هیره) شوې وی .

خوشارحینو رحمهم الله دا اختلاف بیان کړې دې.اوفرمائیلی نې دی .چه دامام ابوحنیفه رحمه الله په نیزد اولنی او دوهم خاوند کې د هریوپه حق کې کمه مودهٔ شپیته ورځې دی .اودصاحبینو رحمهما الله په نیزیوکم څلویښت ورځې دی .

دصاحبینو رحمهما الله دقول مطابق به صورت دا وی .چه خاوند خپلې ښځې ته د طهر په آخری وخت کښې طلاق ورکړې.نوددې ښځې عدت دوې [دوه] طهره اودرې حیضه شو.اودطهر کمه مودهٔ پنځلس ورځې وی .اود

حیض کمه موده دري ورځې وی .نودوې [دوه] طهره دیرش ورځې شوي.اودرې حیضه نهه ورځې شوي.چه دواړه جمع شی .نهیوکم څلویښت ورځې شوي.

اوامام ابوحنیفه رحمه الله د قول تخریج دامام محمد د بیان مطابق دا دې.چه خاوند خپلې ښځې ته د طهر په اول کې طلاق ورکړلو.نوپه دې صورت کې دښځې عدت درې طهره اودرې حیضه شول.اود طهرکمه موده پنځلس ورځې دی .اود حیض مینځنۍ موده پنځه ورځې دی .نود درې طهرو مجموعی موده پنځه څلویښت ورځې شوې.اود درې حیضو مجموعی موده پنځلس ورځې شوې.اوچه دواړه جمع شی .نوشپیته ورځې شوې.

اوحسن بن زیاد رحمه الله د روایت مطابق به تخریج داسې وی .چه خاوندخپلې ښځې ته د طهر په آخر کې طلاق ورکړلو.نوپه دې صورت کې دښځې عدت دوې [دوه] طهره اودرې حیضه شول.اود طهرکمه موده پنځلس ورځې دی .اود حیض زیاته موده لس ورځې دی .نوپه دې صورت کې دوې [دوه] طهره هم دیرش ورځې دی .اودرې حیضه هم دیرش ورځې دی .اود دواړو مجموعه شپیته ورځې دی .والله اعلم بالصواب.(عنایه،کفایه،فتح القدیر،عینی شرح هدایه)

## باب الإيلاء

ژباړه:- (دا) باب دایلاء (په بیان کښې) دې .

تشریح:- آلی یولی ایلاءً قسم خوړل اوپه شریعت کې ایلاء وائی .دڅلوروبیا ددې نه د زیاتې مودې پورې خپلې منکوحې سره د جماع نه کولوقسم خوړل.اوددې شرط دامام ابوحنیفه رحمه الله په نیزد طلاق اهلیت دې.اودصاحبینو رحمهما الله په نیزد کفاره اهلیت دې.اوددې رکن ﴿والله لا اقربك اربعة اشهر﴾ ونیل دی .اوددې حکم په موده دایلاء کې ښځې ته په نزدیکت باندې د کفارې لزوم اود ایلاء د مودې تیریدو په صورت کې طلاق بائن واقع کیدل دی .

### دایلاء دوې [دوه] صورتونه

وَإِذَا قَالَ الرَّجُلُ لِامْرَأَتِهِ اوکه خاوند خپلې ښځې ته اووئیل وَاللّٰهِ لَا أَقْرَبُكِ چې والله زه به تاسره نیزدیکت اونکړم أَوْ قَالَ وَاللّٰهِ لَا أَقْرَبُكِ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ یا وې وئیل.چه والله زه به تاسره څلورمیاشتې نیزدیکت اونکړم فَهُوَ مُولٍ نودا سړې به ایلاء کونکې وی لِقَوْلِهِ تَعَالَىٰ ځکه د الله تعالی ارشاد دې {لِلَّذِينَ يُؤْلُونَ مِن نِّسَائِهِمْ تَرَبُّصُ أَرْبَعَةِ أَشْهُرٍ} الآیة کوم خلګ چې خپلوښځو سره ایلاء کوی .د هغوی لپاره څلور میاشتې انتظار دې.

تشریح:- صورت د مسئلې اوددې دلیل واضح دې.خودا خبره دې ښکاره وی .چه دایلاء دوې [دوه] صورتونه دی .① یود خاوند قول چې ﴿والله لااقربك ابدا﴾ په دې صورت کې دا سړې په اتفاق سره ایلاء کونکې دې.

② دوهم صورت دا چې اووائی .﴿ والله لااقربك اربعة اشهر﴾ په دې صورت کې دې زموږ په نیز ایلاء کونکې دې.اودامام شافعی امام مالك اوامام احمد رحمهم الله په نیزایلاء کونکې نه دې.ترڅوچه نې د څلور میاشتونه د زیاتې مودې قسم نه وی خوړلې.ځکه چې ددې حضراتوپه نیزپه د څلورومیاشتونه روسته دې د ایلاء نه رجوع کولې شی .نوپه څلورومیاشتویاندې د څه مودې زیادت ضروری کول پکار دی .نودامام مالك رحمه الله په نیزکم ازکم یوه ورځ پکارده .اودامام شافعی رحمه الله په نیزیوه ګړۍ.خوددوی دا قول د وجې مردود دې.چه دقرآن دظاهرنه خلاف دې.

### په څلورومیاشتوکې په وطی کولوحنث اودکفارې وجوب

فَإِنْ وَطِئَهَا فِي الْأَرْبَعَةِ الْأَشْهُرِ نوکه په څلور میاشتوکې نې ښځې سره وطی اوکړله حَنِثَ فِي يَمِينِهِ نو پخپل قسم



به حانث وی وَلَزِمَتْهُ الْكَفَّارَةُ او په ده به کفاره لازم وی لِأَنَّ الْكَفَّارَةَ مُوجَبُ الْحِنْثِ ځکه چې کفاره د حانث کیدلو موجب دې وَسَقَطَ الْإِيلَاءُ او ایلاء به ساقط شی .لِأَنَّ الْيَمِينَ تَرْتَفِعُ بِالْحِنْثِ ځکه چې یمین دحانث کیدلو په وجه مرتفع کیږی

تشریح:- صورت د مسئلې دا دې.که خاوند په دې څلورومیاشتوکې دننه دننه ښځې سره وطی اوکړله نوسړې په خپل قسم کې حانث شو.اوپه ده باندې کفاره لازمه ده.دلیل دا دې.چه کفاره په قسم کې دحانث کیدوموجب دې.اوایلاء قسم دې.په دې کې حانث شوې دې.نوکفاره به پرې هم لازمه وی .

وَإِنْ لَمْ يَقْرَبْهَا حَتَّىٰ مَضَتْ أَرْبَعَةُ أَشْهُرٍ او که دې ښځې سره نې قربت اونکړو.تردې چې څلورمیاشتې تیرې شوې بَانَتْ مِنْهُ بِتَطْلِيقَةٍ نو په ده به یوطلاق سره بائنه شی

تشریح:- که خاوندپه موده دایلاء کې ښځې سره وطی اونکړې شوه.تردې چې موده د ایلاء یعنی څلورمیاشتې تیرې شوې.نوداحنافوعالمانو رحمهم الله په نیزدا ښځه په یوطلاق سره بائنه شوه.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: تَبِينُ بِتَفْرِيقِ الْقَاضِي اوامام شافعی رحمه الله فرمائی .چه د قاضی په جلا کاوه سره به بائنه کیږی لِأَنَّهُ مَانِعٌ حَقَّهَا فِي الْجِمَاعِ ځکه چې سړې ددې ښځې حق جماع منع کونکې دې فَيَنُوبُ الْقَاضِي مَنَابَهُ فِي التَّسْرِيحِ كَمَا فِي الْجَبِّ وَالْعُنَّةِ نو قاضی به په خلاصولوکې ددې سړی قائم مقام وی .لکه چې په مقطوع الذکر او عنین کې دی

حل اللغة: ① التفریق: جدا کول ② التسریح:خوشې کول ،پریخودل]

تشریح:- امام شافعی رحمه الله فرمائی .چه دایلاء موده تیره شی .نوددې نه روسته دقاضی په تفریق سره به دا بائنه ګرځی .یعنی د قاضی په فیصله باندې به دایلاء د مودې نه روسته دایلاء حکم موقوف وی .نوکه خاوند د ایلاء کولواودبیلتون نه انکار اوکړلو .او ښځې دقاضی نه د بیلتون مطالبه اوکړله.نودقاضی تفریق به طلاق رجعی وی .اوپه مبسوط کې دی .چه طلاق بائن به وی .

دامام شافعی رحمه الله دلیل دا دې.چه خاوند د څلورومیاشتویا ددې نه د زیاتې مودې د وطی کولونه قسم اوخوړلو.نوده د ښځې حق جماع بنده کړه.اوښکاره خبره ده.چه د دې فعل نه د خاوند اراده د ښځې تنګول اوهغې ته تکلیف ورکول دی .چونکه خاوندپه ښه طریقه باندې دا خوشې نه کړله.بلکه ایساره نې کړله.نوقاضی په ښه طریقه د دې په پریخودوکې د خاوند قائم مقام دې. نوقاضی به د دواړو په مینځ کې جدائی راولی .اود قاضی داجدائی به طلاق بائن وی .اودا داسې دې.لکه څنګه چې خاوند مقطوع الذکر یا نامرده وی .نوقاضی د خاوند قائم مقام وی .اود دواړو په مینځ کې تفریق راولی .اوپه دې دواړوکې علت مشترکه دا دې.چه د ښځې نه د ضرر لرې کاوه لپاره په ښکلې طریقه ددې خلاصول دی .

وَلَنَا أَنَّهُ ظَلَمَهَا بِمَنْعِ حَقِّهَا او زموږ دلیل دادې.چه سړی دښځې حق منع کړې او په دې نې ظلم کړې دې فَجَازَاهُ الشَّرْعُ بِزَوَالِ نِعْمَةِ النِّكَاحِ عِنْدَ مُضِيِّ هَذِهِ الْمُدَّةِ نوشریعت ده ته بدله ورکړله.چه ددې مودې په تیریدلو باندې به دنکاح نعمت زائیل کیږی

تشریح:- زموږدلیل دا دې.چه خاوند ښځې دجماع حق بند کړلو.اوپه دې نې ظلم اوکړلو.نوشریعت ده ته دده د ظلم بدله په دې طریقه ورکوی .چه د ایلاء د مودې تیریدونه روسته ده نه د نکاح نعمت زائله کوی .د دې لپاره چې ښځه د متعلقه ضرر نه خلاصې بیا مومی .اوښکاره ده.چه د طلاق رجعی په ذریعه ښځه نشی خلاصیدې.نودا به طلاق بائن وی .

**وَهُوَ الْمَأْثُورُ عَنْ عُثْمَانَ وَعَلِيٍّ وَالْعَبَادِلَةِ الثَّلَاثَةِ وَزَيْدِ ابْنِ ثَابِتٍ رِضْوَانُ اللّٰهِ عَلَيْهِمْ أَجْمَعِيْنَ**(۱) اوهم دا قول د حضرت عثمان، علی ،عبدالله ابن عباس اود زیدبن ثابت رضوان الله علیهم اجمعین نه منقول دي **وَكَفٰى بِهِمْ قُدْوَةً** او دديې بزرګانو پیشوا کیدل کافي دی

**تشریح:-** صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی .چه زموږ مذهب یعنی دایلاء د مودې تیریدو نه روسته د طلاق بائن واقع کیدل دحضرت عثمان،علی ،عبدالله بن مسعود ،عبدالله بن عباس،عبدالله بن عمر ،زید بن ثابت رضی الله عنه نه منقول دي.اودا زموږ لپاره کافي ده.چه دا حضرات په دې مسئله کې زموږ امامان دی .

**وَلِأَنَّهُ كَانَ طَلَاقًا فِي الْجَاهِلِيَّةِ** خکه چې په زمانه د جاهلیت کې ایلاء کول طلاق وو **فَحَكَمَ الشَّرْعُ بِتَأْجِيْلِهِ إِلَى انْقِضَاءِ الْمُدَّةِ** نوشریعت ددې حد ددې مودې تیریدلو پورې مقرر کړو.

**تشریح:-** دوهم عقلی دلیل دا دې.چه دجاهلیت په زمانه کې ایلاء طالق بائن علی الفوروو.یعنی د ایلاء نه دستی روستو به دا خاوند همیشه لپاره دخپلې ښځې سره وطی نشوه کولې.نوشریعت دا حکم د ایلاء د مودې تیریدو پورې روستو کړلو.نوپه دې حکم کې د تاجیل نه سوا بل څه تصرف نشته.نولکه څنګه به دایلاء په وجه په زمانه جاهلیت کې طلاق بائن واقع کیدل.نودغه ډول به اوس هم صرف طلاق بائن واقع کیږي .البته دومره فرض ضرور شته.چه وړاندې به دستی بینونت وو.اواوس علی التراخی دې.اولکه څنګه چې دجاهلیت په زمانه کښې تفریق د قاضی په تفریق باندې موقوف نه وو.دغه ډول به داسلام نه روسته هم د قاضی په تفریق باندې موقوف نه وی .

### دڅه لورومیاشتوقسم خوړل اودې مودې په تیریدود قسم ختمیدل

**فَإِنْ كَانَ حَلَفَ عَلٰى أَرْبَعَةِ أَشْهُرٍ** نوکه په څلور میاشتو ئې قسم خوړلې وو **فَقَدْ سَقَطَتِ الْيَمِيْنُ** نو قسم ساقط شو **لِأَنَّهَا كَانَتْ مُؤَقَّتَةً بِهِ** خکه چې قسم ددې مودې لپاره موقت وو

**تشریح:-** صورت د مسئلې دا دې.چه څلورمیاشتې تیرې شی .اودې خپلې ښځې ته نزدې نشی .نوکه دڅلورومیاشتونه نزدې کیدوقسم ئې خوړلې وی . نوپه دې صورت کې د څلورومیاشتوپه تیریدو باندې موده تیره شی .قسم ساقط شو.خکه چې په دې صورت کې قسم د څلورومیاشتوپه مودې پورې موقت شوې دې.نوچه دا قسم ساقط شو.

**وَإِنْ كَانَ حَلَفَ عَلَى الْأَبَدِ** اوکه ده ابدی ( همیشه دپاره) قسم خوړلې وی **فَالْيَمِيْنُ بَاقِيَةٌ** نو قسم پاته دې **لِأَنَّهَا مُطْلَقَةٌ** خکه چې قسم مطلق دې **وَلَمْ يُوْجَدِ الْحِنْثُ لِتَرْتَفِعَ بِهِ** او حانث کیدل موجود نشو.چه په حانث کیدلو سره قسم لرې شی .

**تشریح:-** که د واړه عمر نه نزدې کیدو قسم ئې خوړلې وی مثلاً وئیلې ئې وی .«والله لاأقربك أبدا یا والله لاأقربك» د «أبدا» لفظ ئې په کې نه وی ذکرکړې.نو په دې صورت کې که څلورمیاشتې تیرې شوې.او خاوند ورته نزدې نشو.نودا ښځه به په یوطلاق بائن سره بائنه شی .اوقسم به پاته وی .دلیل دا دې.چه په دې صورت کې قسم په څه وخت پورې مقید نه دې.نوقسم به همیشه لپاره وی .اوموجب دحنث چې نزدیکت دې.هغه نه دې موجود شوې.نوددې امله خاوند حانث هم نه دې.خکه چې قسم نه ختمیږی .نوقسم به په خپل خائې باندې پاته وی .

۱) أما روایة عثمان وزید بن ثابت رضی الله عنه ففی مصنف عبدالرزاق وأما روایة ابن عباس وابن عمر رضی الله عنه ففی مصنف ابن أبی شیبة وأما روایة ...ود رضی الله عنه ففی مصنف عبدالرزاق (نقلتها من نصب الرأیة بالإختصار(۳۴۴۱۳)_



**إِلَّا أَنَّهُ لَا يَتَكَرَّرُ الطَّلَاقُ قَبْلَ التَّزَوُّجِ إِلَّا أَنَّهُ لَا يَتَكَرَّرُ الطَّلَاقُ قَبْلَ التَّزَوُّجِ** خودا چې په نکاح کې راوستلو نه وړاندې به طلاق مکرر نه وی **لِأَنَّهُ لَمْ يُوْجَدْ مَنْعُ الْحَقِّ بَعْدَ الْبَيْنُوْنَةِ** خکه چې د بائنه کیدلو نه روسته ( د ښځې) حق منع کول اونه موندې شو

**تشریح:-** البته دنکاح نه وړاندې که نورې څلورمیاشتې تیرې شوې.نودعامومشائخو رحمهم الله په نیزبل طلاق بائن نه واقع کیږی .خکه چې د بینونت نه روسته د ښځې دجماع د حق بندیز نشته.خکه چې د بینونت نه روسته د ښځې دجماع څه حق پاتې شوې نه دې.نو خاوند ظالم نشو.اوچه ظالم نشو.نود نعمت یعنی نکاح په زوال به ده ته بدله هم نشی ورکولې.

**فَإِنْ عَادَ فَتَزَوَّجَهَا** نوکه ده د بائنه کیدلونه روسته بیا دې ښځې سره نکاح اوکړله **عَادَ الْإِيْلَاءُ فَإِنْ وَطِئَهَا** نو ایلاء هم واپس شوه.که وطی ئې اوکړله (نو قسم مات شو) **وَإِلَّا وَقَعَتْ بِمُضِيِّ أَرْبَعَةِ أَشْهُرٍ تَطْلِيْقَةٌ أُخْرٰى** ګنی په څلورو میاشتو تیریدلو به دوهم طلاق وی **لِأَنَّ الْيَمِيْنَ بَاقِيَةٌ لِإِطْلَاقِهَا** خکه چې قسم د مطلق کیدلو په وجه ( اوس هم) پاته دې **وَبِالتَّزَوُّجِ ثَبَتَ حَقُّهَا** اود نکاح کاوه په وجه د ښځې حق ثابت شو **فَيَتَحَقَّقُ الظُّلْمُ** نوظلم به متحقق وی **وَيُعْتَبَرُ ابْتِدَاءُ هٰذَا الْإِيْلَاءِ مِنْ وَقْتِ التَّزَوُّجِ** او ددې ایلاء ابتداء به ( دوباره) په نکاح کې د راتګ و په وخت معتبر وی

**تشریح:-** که د بینونت اوعدت تیریدونه روسته دې مولی (خاوند) بیا دې ښځې سره نکاح اوکړله.نوایلاء به هم واپس کیږی .نوکه ده د ایلاء په دې موده کې وطی اوکړله.نوقسم مات شو.اوکفاره پرې لازمه شوه.اوکه وطی ئې اونکړله.نود څلورومیاشتوتیریدو نه روسته به دوهم طلاق واقع شی .خکه چې یمین په وخت پورې مقید نه دې.نوخکه اوس هم پاته دې.اودنکاح کولوپه وجه د ښځې حق ثابت شو.نوظلم متحقق شو.نود طلاق بائن په ذریعه دا ظلم لرې کیداې شی .اود دویمې ایلاء د مودې پیل به په نکاح کې د راتلود وخت نه پیل کیږی .خوکه د دویمې نکاح ابتداء د ایلاء د مودې تیریدونه روسته وی .نود دویمې ایلاء پیل به د طلاق د وخت نه کیږی .د نکاح د وخت څخه به نه کیږی .(عنایه)

**فَإِنْ تَزَوَّجَهَا ثَالِثًا** بیا که په دریم ځل ئې ددې سره نکاح اوکړله **عَادَ الْإِيْلَاءُ** نو ایلاء به واپس کیږی **وَوَقَعَتْ بِمُضِيِّ أَرْبَعَةِ أَشْهُرٍ أُخْرٰى إِنْ لَمْ يَقْرَبْهَا لِمَا بَيَّنَّاهُ** او په څلور میاشتو تیریدلو باندې به دریم طلاق واقع کیږی .په دې شرط چې څلور میاشتو کې دننه ئې ښځې سره نیزدیکت نه وی کړې.د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ بیان کړې دی

**تشریح:-** بیا که په دریم ځل ئې دې سره نکاح اوکړله.نوایلاء به واپس کیږی .اود څلورو میاشتو په تیریدو به دریم طلاق واقع کیږی .خوپه دې شرط چې په دې موده کې ئې دښځې سره وطی نه وی کړې.دلیل وړاندې تیرشوې دې.چه قسم چونکه د وخت نه مطلق (آزاد) دې.نوپاته دې.اوپه نکاح کولوسره د ښځې حق ثابت شو.نوظلم متحقق شو.(عنایه)

**فَإِنْ تَزَوَّجَهَا بَعْدَ زَوْجٍ آخَرَ** بیا که د دوهم خاوند نه روسته ئې دې خاوند سره نکاح اوکړله **لَمْ يَقَعْ بِذٰلِكَ الْإِيْلَاءِ طَلَاقٌ** نو ددې ایلاء په وجه به هیڅ طلاق نه واقع کیږی **لِتَقَيُّدِهِ بِطَلَاقِ هٰذَا الْمِلْكِ** .ددې ړومبی ملك طلاق سره دایلاء مقید کاوه په وجه

**تشریح:-** مصنف رحمه الله فرمائی .کله چې په درې طلاقوسره د دې ښځې لپاره حرمت غلیظه ثابت شی .اودې ښځې دبل خاوند سره نکاح اوکړله.اووطی هم اوشوه.بیا دوهم خاوند دې ښځې ته طلاق ورکړلو.اوعدت هم تیر شو. نوکه اولنی خاوند یعنی مولی ددې ښځې سره نکاح اوکړله.نوددې ایلاء په وجه به څه طلاق نه واقع کیږی .

خکه چې دا ایلاء صرف د اولنی ملك سره متعلق وه.خکه چې ایلاء د طلاق په مرتبه کې ده.

وَهِيَ فَرْعُ مَسْأَلَةِ التَّنْجِيزِ الْخِلَافِيَّةِ او دا اختلافي مسئله د تنجيزي مسئلي فرع ده وَقَدْ مَرَّ مِنْ قَبْلُ او دا مسئله وړاندې تیره شوې ده وَالْيَمِينُ بَاقِيَةٌ لِإِطْلَاقِهَا وَعَدَمِ الْحِنْثِ او قسم اوسه پورې پاته دی. د قسم مطلق کیدلو او حانث کیدلو په وجه فَإِنْ وَطِئَهَا بیا که دې ښځې سره ئې وطی اوکړله كَفَّرَ عَنْ يَمِينِهِ لِوُجُودِ الْحِنْثِ نو د خپل قسم کفاره دې اداکړي. د قسم ماتیدلو موجود کیدلو په وجه.

تشریح:- دا مسئله فرع ده. د مختلف فیه متجزی مسئلي. کومه چې په «باب الأيمان في الطلاق» کې تیره شوې ده. چه د امام زفر رحمه الله په نیز تعلیق نه باطلیږی. او زموږ په نیز باطلیږی.

[1] په مبسوط کې دی. کوم کس چې د خپلې ښځې نه ایلاء اوکړله. چه په الله قسم تاته به نه نزدې کیږم. اوبیا ئې ورته درې طلاقه منجزور کړل. نو زموږ په نیز ایلاء باطله شوه. او د امام زفر رحمه الله په نیز نه باطلیږی.

[2] زموږ دلیل دا دی. چه ایلاء طلاق موجل دی. چه په مملوکه باندې د درې طلاقونه روسته منعقد کیږی. او چه په دې ښځه باندې د درې طلاقو نه روسته طلاق پاته پاتې نشو. نو ایلاء هم پاته پاتې نشوه.

[3] او دغه ډول که دا په دې ایلاء سره درې خله بائنه شوه. او بیا ئې د دوهم خاوند سره نکاح اوکړله. نو هم زموږ په نیز ایلاء باطله شوه. او د امام زفر رحمه الله په نیز ایلاء نه ده باطله. البته یمین پاته پاتې دی. ځکه چې یمین مطلق عن الوقت دی. (یعنی په وخت پورې معلق نه دی) او چه وطی نه ده راغلې. نو حانث شوې هم نه دی. او که دې ښځې سره ئې وطی اوکړله. نو د خپل قسم کفاره به ورکوی. ځکه چې قسم مات شو. والله اعلم

### د څلورو میاشتو نه د کمې مودې قسم خوړونکې مولی نه دی

فَإِنْ حَلَفَ عَلَى أَقَلَّ مِنْ أَرْبَعَةِ أَشْهُرٍ نو که د څلور میاشتو نه په کم ئې قسم اوخوړلو لَمْ يَكُنْ مُولِيًا نو ایلاء کونکې به نه وی. لِقَوْلِ ابْنِ عَبَّاسٍ: لَا إِيلَاءَ فِيمَا دُونَ أَرْبَعَةِ أَشْهُرٍ[1] ځکه د ابن عباس (رضی الله عنهما) قول دی. چه د څلور میاشتو نه په کم کې ایلاء نه وی

تشریح:- صورت د مسئلې دا دی. که یو کس د څلورو میاشتو نه د کمې مودې خپلې ښځې ته د نزدیکت نه قسم اوخوړلو. نو دا کس ایلاء کونکې نه دی. مثلاً او وائی. «والله لاأقربك ثلاثة أشهر» [2] او ابن ابی لیلی رحمه الله فرمائی. چه دا کس ایلاء کونکې دی. او چه تر څلورو میاشتو پورې دخپلې دې ښځې سره وطی اونکړی. نو دا به مطلقه بائنه شی. امام ابوحنیفه رحمه الله به اول هم دا فرمائیل. خو چه کله هغه ته د ابن عباس رضی الله عنهما فتوی ملاؤ اورسیدله. چه «لا إيلاء فيما دون أربعة أشهر» نو امام صاحب رحمه الله دخپل قول نه رجوع اوکړله.

[3] خو د ابن عباس رضی الله عنهما دا فتوی د نص د ظاهر نه خلاف ده. ځکه چې الله تعالی فرمائیلی ((لِلَّذِينَ يُؤْلُونَ مِنْ نِسَائِهِمْ تَرَبُّصُ أَرْبَعَةِ أَشْهُرٍ)) ځکه چې په دې آیت کې ایلاء مطلقه ده. او تربص (انتظار کول) د څلورو میاشتو په قید سره مقید ده. د دې مقتضا خو دا ده. که یو کس دخپلې ښځې نه ایلاء اوکړله. اګر که کمه وی. مثلاً یوه ورځ یا د دې هم کمه وی. نو په ده باندې څلور میاشتې انتظار لازم دی. نو ایلاء د څلورو میاشتو په قید باندې مقید کول د قرآن د نص نه خلاف دی. او د ابن عباس رضی الله عنهما د فتوی په وجه په نص باندې زیادت ناجائز دی. نو امام ابوحنیفه رحمه الله د خپل مخکنی قول نه ولې رجوع اوکړله.

[4] ځواب، د ابن عباس رضی الله عنهما دا فتوی په مقدراتو کې واقع شوې ده. او په مقدراتو کې د رائې څه دخل نشته. نو معلومه شوه. چه ابن عباس رضی الله عنهما به دا فتوی د نبی ﷺ نه اوریدلې وی. او دا چه نه اختلاف هم منقول نه دی. نو ځکه به دا فتوی د نص تفسیر ګرځولې شی. تقیید نه، او د آیت تقدیری عبارت به دا شی ((لِلَّذِينَ يُؤْلُونَ مِنْ نِسَائِهِمْ تَرَبُّصُ أَرْبَعَةِ أَشْهُرٍ)) یعنی کوم کسان چې دخپلو بیبیانو نه څلورو میاشتې ایلاء کوی. نو څلور میاشتې

---

[1] أخرجه ابن ابی شيبة فی مصنفه (نصب الراية ۳/۲۴۷)_



مهلت دی. نو په ایت کې اول څلور میاشتې د دې امله ذکر نکړې شوې. چه دویمې څلور میاشتې پرې دلالت کوی.

وَلِأَنَّ الِامْتِنَاعَ عَنْ قُرْبَانِهَا فِي أَكْثَرِ الْمُدَّةِ بِلَا مَانِعٍ او ځکه چې (د مولا) ښځې ته نزدې تللو سره په اکثر کې من کیدل د څه مانع نه بغیر دی وَبِمِثْلِهِ لَا يَثْبُتُ حُكْمُ الطَّلَاقِ فِيهِ او په داسې ډول امتناع سره د طلاق حکم نه ثابتیږی.

تشریح:- او عقلي دلیل دا دی. چه کوم کس د څلورو میاشتو نه په کمه موده کې د نزدیکت نه قسم اوخوړلو. نو مثلاً قسم ئې اوخوړلو. چه په الله قسم زه به خپلې ښځې سره یو میاشت قربت نه کوم. نو اوس د دې کس د یوې میاشتې نه د زیاتې مودې یعنی دویمه او دریمه میاشت قربت نه وطی نه قربت نه منع کیدل بغیر د مانع نه شو. ځکه چې په روستنو درې میاشتو کې د قربت نه قسم نه دی خوړلې شوې. او داسې قسم چې د څلورو میاشتو نه په کمه موده باندې منعقد وی. نو د څلورو میاشتو په تیریدو په هغې باندې د طلاق حکم نه ثابتیږی. لکه څنګه چې یو کس د څلورو میاشتو یا د دې نه زیاته موده خپلې ښځې ته نزدې نشی. نو په دې صورت کې د څلورو میاشتو په تیریدو طلاق نه واقع کیږی. (عنایه)

[1] فیه کې د ضمیر په مرجع کې درې احتمالات دی. ① د دې ضمیر مرجع امتناع ګرځولې شی. ② چه دا حلف مرجع اوګرځولې شی. کوم چې «عِلّة» نه معلومیږی. ③ چه اکثره موده مرجع اوګرځولې شی. دا خبره دې ښکاره وی. که صاحب د هدایه رحمه الله «ولأن الإمتناع عن قربانها فی بعض المدة» فرمائیلی وو. په ځائې د اکثرې مودې. نو عبادت به زیات واضح وو. والله اعلم بالصواب.

### د «والله لاأقربك شهرين وشهرين بعد هذين الشهرين» حکم

وَلَوْ قَالَ وَاللَّهِ لَا أَقْرَبُكِ شَهْرَيْنِ وَشَهْرَيْنِ بَعْدَ هَذَيْنِ الشَّهْرَيْنِ او که وې وئیل. په خدائې قسم زه به تاسره قربت نه کوم. دوې [دوه] میاشتې او دوې [دوه] میاشتې. د دې دوې [دوه] میاشتو نه روسته فَهُوَ مُولٍ نو دا کس به ایلاء کونکې وی

تشریح:- صورت د مسئلې دا دی. که یو کس خپلې ښځې ته اووئیل. «والله لاأقربك شهرين وشهرين بعد هذين الشهرين» نو دې مولی (ایلاء کونکې) دی.

لِأَنَّهُ جَمَعَ بَيْنَهُمَا بِحَرْفِ الْجَمْعِ ځکه چې ده دواړه په حرف جمع سره جمع کړی دی فَصَارَ كَجَمْعِهِ بِلَفْظِ الْجَمْعِ نو په لفظ د جمع سره د جمع کاوه پشان شو.

تشریح:- دلیل دا دی. چه دې کس په حرف جمع واوسره دواړه جمع کړل. نو داداسې شوه. لکه چې په صیغه د جمعې سره جمع اوکړله. یعنی داسې شوه. لکه چې ده «والله لاأقربك أربعة أشهر» اووئیل. او دا یمین واجد دی. او که په دې موده کې ئې وطی اوکړله. نو په ده به کفاره لازمه وی.

### د «والله لاأقربك شهرين» نه روسته یوه ورځ چپوالې او بیا «والله لاأقربك شهرين بعدشهرين الأولين» حکم

وَلَوْ مَكَثَ يَوْمًا او که دې یوه ورځ (منع) پاتې شو ثُمَّ قَالَ وَاللَّهِ لَا أَقْرَبُكِ شَهْرَيْنِ بَعْدَ الشَّهْرَيْنِ الْأَوَّلَيْنِ بیا ده اووئیل په خدائې قسم زه به تاسره قربت نه کوم، دوې [دوه] میاشتې د رومبی دوې [دوه] میاشتو نه روسته لَمْ يَكُنْ مُولِيًا نو دې به ایلاء کونکې نه وی

تشریح:- صورت د مسئلې دا دی. چه خاوند اووئیل. «والله لاأقربك شهرين» او بیا یوه ورځ چوپ وو. او بیا ئې اووئیل. «والله لاأقربك شهرين بعدشهرين الأولين» نو دا مولی نه دی. امام شافعی او امام احمد رحمه الله هم د دې قائل دی.

لِأَنَّ الثَّانِي إِيجَابٌ مُبْتَدَأٌ ځکه چې دوهم ډول د پیل نه ایجاب دی وَقَدْ صَارَ مَمْنُوعًا بَعْدَ الْيَمِينِ الْأُولَى شَهْرَيْنِ

حالانكه دي د ړومبی قسم نه روسته دوي (دوه) مياشتي ( د وطی نه) ممنوع وو وَبَعْدَ الثَّانِيَةِ أَرْبَعَةُ أَشْهُرٍ إِلَّا يَوْمًا تَمْكُثُ فِيهَا او د دوهم قسم نه روسته د څلور مياشت داسې ممنوع شو. علاوه د يوې ورځې، چه په دې كې (منع) پاتې شوي وو فَلَمْ تَتَكَامَلْ مُدَّةُ الْمَنْعِ نو موده د منع به پوره نه وي.

تشريح:- ددې اصل دا دې. كه په معطوف كې دالله نوم ذكر نه وي. او نه په كې حرف نفي ذكروی. او نه د معطوف او معطوف عليه په مينځ كې ودريدل موجود شوي وي. نود معطوف حكم به د معطوف عليه په حكم كې داخل وي. لكه څنګه په پورتنۍ مسئله كې دی. اوكه په دې درې وارو څيزونوكې يو هم نه وي. نودا به مستقل ايجاب وي. دوړاندينی كلام سره به ددې څه تعلق نه وي. نوددې اصل مطابق به په دويمه مسئله كې دا كس ايلاء كونكې نه وي. څكه چې درې واړه شيان (څيزونه) په كې نشته. څكه چې د معطوف او معطوف عليه په مينځ كې د يوې ورځې فصل هم موجود دې. او لفظ دالله او د حرف نفي اعاده هم په معطوف كې مذكور ده.

[نود اولنی قسم نه روسته دې دوې (دوه) مياشتې د وطی كولونه منع شو. او چه دوهم قسم ئې اولنی نه منسوب كړلو نو ده خپل ځان د يوې ورځې كم څلورومياشتو د وطی نه منع كړلو. نو په دواړه قسمونوكې موده د منعې (څلورمياشتې) نه برابريږي. نوځكه دا كس ايلاء كونكې نه دې. او دده كلام به مستقل دوې (دوه) قسمونه وي. او په يوځل وطی كولو به دوې (دوه) كفارې لازميږي.

## د «والله لاأقربك سنة إلا يوما» حكم

وَلَوْ قَالَ او كه ده او ونيل وَاللَّهِ لَا أَقْرَبُكِ سَنَةً إِلَّا يَوْمًا په خدائې قسم زه به تاسره قربت نه كوم. يو كال سوا د يوې ورځې نه لَمْ يَكُنْ مُولِيًا نودا به ايلاء كونكې نه وي

تشريح:- مسئله دا ده چه يو خاوندخپلې ښځې ته او ونيل « والله لاأقربك سنة إلا يوما» نود درې واړه (احناف) عالمانو رحمهم الله په نيز دا كس ايلاء كونكې نه دې.

خِلَافًا لِزُفَرَ رحمه الله د امام زفر رحمه الله اختلاف دې دې هُوَ يَصْرِفُ الِاسْتِثْنَاءَ إِلَى آخِرِهَا اعْتِبَارًا بِالْإِجَارَةِ د كال آخر ارخ ته ګرځوی په اجاره باندې قياس كاوه سره فَتَمَّتْ مُدَّةُ الْمَنْعِ نو د انكار موده پوره كيږي

تشريح:- او امام زفر رحمه الله فرمائي چه ايلا كونكې دې امام شافعي رحمه الله هم ددې قائل دې. دليل دا دې چه استثناء به د كال آخرته منسوب كولې شي. دوی د اجاره په مسئله قياس كوی. چه يوسړی خپل كوريوه ورځه كم د يو كال لپاره په اجاره باندې وركړلو او د يوې ورځې استثناء ئې او كړله نواوس دا يوه ورځ به د كال آخر ته اوړولې شي. او موده د اجارې به آخری يوه ورځ كم يو كال وي.

[هم دا وجه ده كه يو كس خپلې ښځې ته او ونيل چه «والله لاأقربك سنة إلا نقصان يوم» نو په اتفاق سره به د استثناء دا يوه ورځ د كال آخرته اړولې شي. نو دغه ډول به په مذكوره مسئله كې هم يوه ورځ د كال آخرته اړولې شي. نو مطلب دا شو چه خاوند خپلې ښځې ته او ونيل زه به تاسره يو كال وطی نه كوم سوا د هغه يوې ورځې نه، كومه چې د كال آخری ورځ ده. نو چونكه په دې صورت كې موده د ايلاء څلور مياشتې بلكه ددې نه زياتې پوره كيږي. نوځكه به دا كس ايلاء كونكې شمارلې شي.

وَلَنَا أَنَّ الْمُولِيَ مَنْ لَا يُمْكِنُهُ الْقُرْبَانُ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ إِلَّا بِشَيْءٍ يَلْزَمُهُ او زموږ دليل دادې چه ايلاء كونكې هغه سړې دی چه دې څلور مياشتې وطی نه كوی. خو په داسې شی سره چې په ده لازم وی وَيُمْكِنُهُ هَاهُنَا او دلته كې (دغه لازميدلو بغير) وطی كولای شی لِأَنَّ الْمُسْتَثْنَى يَوْمٌ مُنَكَّرٌ څكه كومه ورځ چې مستثنی ده هغه منكر (غيرمعين) ده

تشريح:- زموږ دليل دا دې چه ايلاء كونكې هغه كس ته وائی چه بغيرد كفارې د وجوب نه ترڅلورو مياشتو



پورې وطی نشي كولې. او دا كس چې «والله لاأقربك سنة إلا يوما» وئيلي دی. بغيرد كفارې د وجوب نه يوه ورځ وطی شي كولې. څكه چې په «إلا يوما» كې يوم نكره غيرمعين ده. دكال په هره ورځ ددې اطلاق كيږي نوځكه دكال آخری ورځ ته ددې اړول معتبر نه دی. ددې لپاره چې د متكلم كلام په خپل حقيقت باندې پاته پاتې شي.

بِخِلَافِ الْإِجَارَةِ. په خلاف د اجاره لِأَنَّ الصَّرْفَ إِلَى الْآخِرِ لِتَصْحِيحِهَا څكه چې آخر كال ارخ ته ګرځول، داجاره صحيح كاوه لپاره دی فَإِنَّهَا لَا تَصِحُّ مَعَ التَّنْكِيرِ څكه چې اجاره غيرمعين كيدلو سره نه صحيح كيږي وَلَا كَذَلِكَ الْيَمِينُ او د قسم دا حال نه دی

تشريح:- «بخلاف الإجارة» په دې سره دامام زفر رحمه الله د قياس خواب كوی. دخواب حاصل دا دې چه په اجاره كې د مستثنی ورځې دكال آخرته منسوب كول څكه ضروری وو. چه اجاره صحيح شي. څكه چې دجهالت سره اجاره صحيح نه وی. او ديمين دا حال نه دې. څكه چې يمين دجهالت باوجود صحيح وی. نو په دواړو مسئلوكې توپير راغلو. نود يو په بله باندې قياس كول قياس مع الفارق دې.

وَلَوْ قَرِبَهَا فِي يَوْمٍ وَالْبَاقِي أَرْبَعَةُ أَشْهُرٍ أَوْ أَكْثَرُ او كه يوه ورځ ئې ښځې سره قربت او كړو. حالانكه څلور مياشتې يا زياتې پاته دی صَارَ مُولِيًا لِسُقُوطِ الِاسْتِثْنَاءِ نو دې به ايلاء كونكې وی. د استثناء ساقطولو په وجه.

تشريح:- او كه د «والله لاأقربك سنة إلا يوما» وئيلو نه روسته دې كس يوه ورځ وطی او كړله. او ددې وطی نه روسته د څلورو مياشتونه زياته موده پاته وه. نو دا كس به ايلاء كونكې وی. څكه چې استثناء دكومې د املې چې دعدم ايلاء حكم وو. هغه ساقط شو. نوځكه د ايلاء حكم ثابت شو.

## د «والله لاأدخل الكوفة إلخ» حكم

وَلَوْ قَالَ وَهُوَ بِالْبَصْرَةِ او كه سړی او ونيل. په داسې حال كې چې دې په بصره كې دې وَاللَّهِ لَا أَدْخُلُ الْكُوفَةَ وَامْرَأَتُهُ بِهَا په خدائې قسم زه به كوفې ته نه داخليږم. په داسې حال كې چې دده ښځه په كوفه كې ده لَمْ يَكُنْ مُولِيًا نودا كس به ايلاء كونكې نه وی

تشريح:- كه يو كس په بصره كې وی. او دده ښځه په كوفه كې وی. او دې دا قسم او خوری. چه «والله لاأدخل الكوفة» نو دې ايلاء كونكې نه دې.

لِأَنَّهُ يُمْكِنُهُ الْقُرْبَانُ مِنْ غَيْرِ شَيْءٍ يَلْزَمُهُ بِالْإِخْرَاجِ مِنَ الْكُوفَةِ څكه چې دا كس وطی كولې شی. بغير د داسې شی نه چې په ده باندې لازم وی. د كوفې نه په وتلو سره.

تشريح:- دليل دا دې چه وړاندې تيرشوی دی. چه ايلاء كونكې هغه كس ته وائی. چه هغه بغيرد كفارې دوجوب نه څلور مياشتې خپلې ښځې سره وطی نشي كولې. او دا كس د كفارې د وجوب نه بغيروطی كولې شي. په دې طريقه چې د څلورومياشتو تيريدو نه وړاندې دخپل وكيل يا نائب په ذريعه خپله ښځه د كوفې نه اوباسی. او بيا ورسره وطی او كړی. نو په دې صورت كې د ايلاء معنی نه متحقق كيږي.

## دحج روژې وغيره قسم كونكې مولی دې

قَالَ مصنف رحمه الله فرمائي وَلَوْ حَلَفَ بِحَجٍّ أَوْ بِصَوْمٍ أَوْ بِصَدَقَةٍ أَوْ عِتْقٍ أَوْ طَلَاقٍ كه يو كس دحج يا روژې يا صدقې يا د ازادولو يا د طلاق قسم او خوړلو فَهُوَ مُولٍ نودې ايلاء كونكې شو

تشريح:- وړاندې په ايلاء كښې په الله د قسم خوړلو بيان ذكر وو. او س دلته د الله تعالى نه سوا په بل څيز سره ديمين بيل كوی. يعنی د شرط او جزاء دواړو ذكر كولو سره د يمين صورتونه بيانوی.

ⓐ صاحب دقدوري رحمه الله فرمائي .كه دحج قسم ئې اوخوړلو.يعنى داسې ئې اوونيل.﴿ إن قربتك فعلى حج البيت﴾يا ئې دروژې قسم اوخوړلو.يعنى وې ونيل.﴿إن قربتك فعلى صوم سنة﴾يا ئې دصدقې قسم اوخوړلو.او وې ونيل.﴿ إن قربتك فعلى صدقة عشرة دراهم﴾يا ئې د آزادولوقسم اوخوړولو.مثلاً ونې ونيل.﴿إن قربتك فعلى عتق رقبة﴾ يا ئې د طلاق قسم اوخوړول مثلا وې ونيل ﴿إن قربتك فضرتك طالق﴾ نوپه دې ټولوصورتونوكي دا سړى ايلاء كونكې دې.

لِتَحَقُّقِ الْمَنْعِ بِالْيَمِينِ خكه( چې د قربت نه ) منع كيدل د قسم په وجه متحقق شوى دى وَهُوَ ذِكْرُ الشَّرْطِ وَالْجَزَاءِ او ( قسم) هم دا د شرط او جزاء بيان دې وَهَذِهِ الْأَجْزِيَةُ مَانِعَةٌ اودا جزاګانې ( د قربت نه ) مانع شوې لِمَا فِيهَا مِنَ الْمَشَقَّةِ خكه چې په دې كې سخت تكليف دې

تشريح:- دليل دا دې.چه د شرط اوجزاء ذكركولوپه وجه د وطى اوقربت نه منع كيدل ثابت شو.اودا جزاګانې يعنى حج روزه وغيره د شرط د ارتكاب نه منع كونكى دى .خكه چې ددې جزاګانوپه كولوكې مشقت دې.خكه چې كله شرط ادا كړى .نوجزاء به خامخا واقع كيږى .اودجزاء په واقع كيدوكې مشقت دې.نوخكه جزاء مانع د شرط ده.نوپه دې ټولوصورتونوكې د ښځې سره د وطى كولونه مانع متحقق دې.اودښځې سره د وطى كولونه د مانع نوم ايلاء ده.نوپه دې ټولوصورتونوكې به ايلاء متحقق وى .نوكه د څلورومياشتو مودهٔ بغيرد وطى نه تيره شوه.نوپه ښځه باندې يوطلاق بائن واقع كيږى .

وَصُورَةُ الْحَلِفِ بِالْعِتْقِ أَنْ يُعَلِّقَ بِقُرْبَانِهَا عِتْقَ عَبْدِهِ[1] اود آزادولو د قسم خوړلوصورت دادې.چه د ښځې په قربت باندې د خپل غلام آزادول معلق كړى ،وَفِيهِ خِلَافُ أَبِي يُوسُفَ رحمه الله او په دې كې دامام ابويوسف رحمه الله اختلاف دې فَإِنَّهُ يَقُولُ يُمْكِنُهُ الْبَيْعُ ثُمَّ الْقُرْبَانُ خكه ابويوسف رحمه الله فرمائي .چه دده لپاره غلام خرڅول بيا قربت كول ممكن دى فَلَا يَلْزَمُهُ شَيْءٌ نو دده په ذمه به هيڅ ( كفاره) نه لازميږى

تشريح:-صاحب دهدايه رحمه الله فرمائي .چه د حلف بالعتق صورت دا دې.چه دښځې په قربت پورې دخپل غلام آزادول معلق كړى .اوپه دې كې د ايلاء په ثبوت كې دامام ابوايوسف رحمه الله اختلاف دې.دوى فرمائي .كه دخپل غلام آزادى ئې دخپلې ښځې په قربت پورې معلق كړله.نودا ايلاء نه ده.خكه كه دا كس اول دا غلام آزاد كړى .اوبيا دې ښځې سره وطى اوكړى .نوپه ده باندې څه نه واجبيږى .نه دغلام آزادول اونه كفاره،اوهركله چې څه واجب نشو.نودا ايلاء هم نشوه.

وَهُمَا يَقُولَانِ الْبَيْعُ مَوْهُومٌ او طرفين فرمائي .چه بيع كول موهوم امر دې فَلَا يَمْنَعُ الْمَانِعِيَّةَ فِيهِ نودا په ايلاء كې د مانعيت نه منع نشو

حل اللغة: ① موهوم: هغه شى چې ګمان پرې كولاى شى ]

تشريح:- طرفين رحمهما الله فرمائي .چه بيع امرموهوم دې. كيداې شى چې خرڅ ئې كړى .او كيداې شى .چه خرڅ ئې نكړى . نوپه ايلاء كې مانع شرط يعنى دجزاء لپاره څه مانع نشته.اوهركله چې د ايلاء لپاره مانع نشته.نوجزاء موجود شوه.اوجزاء يعنى د غلام آزادى مانع د قربت دې.حاصل دا چې په دې صورت كې مانع موجود دې. اودمانع قربت نوم ايلاء ده.نوپه دې صورت كې هم ايلاء موجود ده.

وَالْحَلِفُ بِالطَّلَاقِ أَنْ يُعَلِّقَ بِقُرْبَانِهَا طَلَاقَهَا او طلاق سره د قسم خوړلو صورت دادې.چه ددې ښځې په قربت باندې هم ددې طلاق أَوْ طَلَاقَ صَاحِبَتِهَا يا ددې د بنې ( دويمې ښځې) طلاق معلق كړى وَكُلُّ ذَلِكَ مَانِعٌ او په

[1] القول الراجح هو قول الطرفين رحمهما الله كذا فى فتح القدير(٥٢٠١٤)والعناية (٥٢١٤)والدرالمختار(٥٩٢١٢) نقلاً عن القول الراجح (٣٤٣)_



دې دواړو خبروكې هره يوه خبره ددې سره د قربت كاوه نه منع كونكې ده.

تشريح:- د حلف بالطلاق صورت دا دې.چه دطلاق دښځې په وطى پورې معلق كړى .يا ددې د بن طلاق معلق كړى .اوپه دې دواړو خبروكې هره يوه خبره ددې د وطى كاوه نه منع كونكې وى .مثلاً خاوند اووائى .كه تاسره مې وطى اوكړله.نوته دې طلاقه ئې.يا زما ښځه فلانئ دې طلاقه وى .نود طلاق د ويرې د امله به دې سره وطى نه كوى .نوهم دا ايلاء ده.نوكه ده په څلورو مياشتوكې دننه دننه وطى اوكړله.نودا به مطلقه وى .اوكه د وطى نه بغيرڅلور مياشتې تيرې شوې.نودا ښځه به په يوطلاق سره بائنه شى .والله اعلم

## د مطلقه رجعيه اومطلقه بائنه د ايلاء حكم

وَإِنْ آلَى مِنَ الْمُطَلَّقَةِ الرَّجْعِيَّةِ اوكه خپلې مطلقه رجعيه سره ئې ايلاء اوكړله كَانَ مُولِيًا نو ايلاء كونكې به وى

تشريح:-صورت د مسئلې دا دې.كه يوكس د مطلقه رجعيه نه ايلاء اوكړله.نودا سړې د څلورواړه امامانواود جمهوروعالمانو رحمهم الله په نيزايلاء كونكې دې.

وَإِنْ آلَى مِنَ الْبَائِنَةِ او كه مطلقه بائنه سره ئې ايلاء اوكړله لَمْ يَكُنْ مُولِيًا نوايلاء كونكې به نه وى لِأَنَّ الزَّوْجِيَّةَ قَائِمَةٌ فِي الْأُولَى دُونَ الثَّانِيَةِ خكه چې په مطلقه رجعيه كې بى بى كيدل موجود دى .او په مطلقه بائنه كې ( بى بى كيدل موجود) نه دى

تشريح:- اوكه دمطلقه بائنه نه ئې ايلاء اوكړله.نوپه اتفاق سره ايلاء كونكې نه دې.

دليل دا دې.چه زوجيت (ښځه توب) په مطلقه رجعيه كې موجود دې.اوپه مطلقه بائنه كې رجعيت موجود نه دې.اودايلاء محل هغه ښځه وى .چه زموږ ښځه وى .خكه چې الله تعالى فرمائيلى دى ((لِلَّذِينَ يُؤْلُونَ مِنْ نِسَائِهِمْ)) اود بائنه كيدونه روسته زوجه نه پاتې كيږى .نوخكه مطلقه بائنه محل دايلاء نه دې.خوكه ددې مطلقه بائنې سره ئې وطى اوكړله.نود يمين په وجه به پرې كفاره لازميږى .اوددې په خلاف مطلقه رجعيه ده.خكه چې هغه د ايلاء محل دې.خكه چې د طلاق رجعى نه روسته زوجيت پاتې وى .هم دا وجه ده.چه زموږ په نيزد معتده رجعيه سره وطى كول جائزدى .البته دا كه د ايلاء د مودې يعنى څلورو مياشتونه وړاندې د معتده رجعيه عدت پوره شو.نوايلاء به ساقطه شى .خكه چې دعدت تيريدو په وجه محل د ايلاء فوت شو.

وَمَحَلُّ الْإِيلَاءِ مَنْ تَكُونُ مِنْ نِسَائِنَا بِالنَّصِّ او حال دادې.چه د ايلاء محل هم هغه ښځې وى .چه زموږ بيبيانې وى .په نص د قرآن سره فَلَوِ انْقَضَتِ الْعِدَّةُ قَبْلَ انْقِضَاءِ مُدَّةِ الْإِيلَاءِ بيا كه د مودې تيريدلو نه وړاندې د مطلقه رجعيه عدت تيرشو سَقَطَ الْإِيلَاءُ لِفَوَاتِ الْمَحَلِّيَّةِ نوايلاء هم ساقط شوه.دمحل فوت كيدلو په وجه.

تشريح:-دلته يواشكال پيدا كيږى .هغه دا چې پكار ده.چه د مطلقه رجعيه نه ايلاء كول صحيح نه وى .خكه چې ايلاء د ښځې د جماع حق منع كول اوپه هغې باندې د ظلم كاوه جزاء ده.اود مطلقه رجعيه لپاره په جماع كې څه حق نشته.نوقضاء اونه ديانة،نوخكه د مطلقه رجعيه لپاره د وطى كولوولايت نشته.تردې چې د خاوند لپاره دا مستحب دى .چه هغه د جماع نه بغيرپه قول سره رجوع اوكړى .نو خاوند ظالم نشو.نوپه ده به د ظلم جزاء يعنى ايلاء هم نه مرتب كيږى .

ⓐ خواب دا دې.چه په منصوص عليه كې عين نص معتبر وى .معنى د نص معتبره نه وى .اومطلقه رجعيه د نص په وجه په ﴿نسائنا﴾ كې ده.خكه چې دالله تعالى ارشاد دې.((وَبُعُولَتُهُنَّ أَحَقُّ بِرَدِّهِنَّ)) اودا آيت د طلاق رجعى په اړه كې نازل شوې وو.اوبعل خاوند دې.نومطلقه رجعيه به ددې خاوند وى .اوكوم حكم چې په نساء ازواج يعنى د خاوندانوپه ښځو باندې مرتب وى .نود ((لِلَّذِينَ يُؤْلُونَ مِنْ نِسَائِهِمْ)) په وجه به هغه حكم دلته په مطلقه رجعيه باندې هم مرتب وى .خكه چې مطلقه رجعيه هم په نساء ازواج كې ده.

## د نکاح نه وړاندې د ایلاء یا د ظهار حکم

وَلَوْقَالَ لِأَجْنَبِيَّةٍ او که یوې اجنبیه ( غیرمنکوحه ښځې ) ته ئې اووئیل وَاللّٰهِ لَا أَقْرَبُكِ په خدائې قسم زه به تاسره قربت نه کوم أَوْأَنْتِ عَلَيَّ كَظَهْرِأُمِّي ته په ماباندې زما د مور د خیټې پشان ئې ثُمَّ تَزَوَّجَهَا بیا ددې ښځې سره نکاح اوکړله لَمْ يَكُنْ مُولِيًا وَلَا مُظَاهِرًا نودا کس به نه ایلاء کونکې وی او نه ظهارکونکې

تشریح:- صورت د مسئلې دا دې.چه یوکس پردئ ښځې ته اووائی .«والله لاأقربك یا أنت علی کظهرامی» بیا دې کس دغه پردئ ښځې سره نکاح اوکړله.نودا کس نه ایلاء کونکې دې اونه ظهارکونکې.

لِأَنَّ الْكَلَامَ فِي مَخْرَجِهِ وَقَعَ بَاطِلًا لِانْعِدَامِ الْمَحَلِّيَّةِ ځکه چې کلام د خپل تکلم په وخت لغو شو.د محل معدوم کیدلو په وجه فَلَا يَنْقَلِبُ صَحِيحًا بَعْدَ ذٰلِكَ نو ددې نه روسته به دا کلام واپس نه صحیح کیږی کظهرامی» بیا دې کس دغه پردئ ښځې سره نکاح اوکړله.نودا کس نه ایلاء کونکې دې اونه ظهارکونکې.

تشریح:-دلیل دا دې.چه د ایلاء اوظهارد محل د نشتوالی د امله چې کوم کلام شوې دې.هغه لغو دې.ځکه چې د ایلاء اوظهارمحل «نسائنا» دې.نودا دمردار دبیعې پشان شوه.نوکلام «والله لا اقربك اوانت علی کظهرامی» لغو اوباطل شو.اوکوم کلام چې یوځل باطل واقع شی .هغه دوباره نه صحیح کیږی .نوځکه به دا کلام هم واپس نه صحیح کیږی .

وَإِنْ قَرِبَهَا كَفَّرَ او که دې ښځې سره قربت کوی نوکفاره به ورکوی لِتَحَقُّقِ الْحِنْثِ.د حانث کیدلو متحقق کیدو په وجه إِذِ الْيَمِينُ مُنْعَقِدَةٌ فِي حَقِّهِ ځکه چې یمین د حانث کیدلوپه حق کې منعقد شوې وو.

تشریح:- خوکه دې کس ددې ښځې سره وطی اوکړله.نوکفاره به واجب وی .ځکه چې د وطی کولوپه وجه حنث واقع شوې دې .اود حانث کیدوموجب کفاره ده.نوځکه کفاره واجب ده.اوحانث کیدل ددې امله موجود شو.چه یمین دحانث کیدو په وجه منعقد شوې دې.خود کفارې دا وجوب په هغه وخت کې دی .چه اجنبی ښځې ته ئې «والله لاأقربك» ونیلی وی .اوکه اجنبی ښځې ته ئې «أنت علی کظهرامی» اووئیل.اودنکاح کولونه روسته ئې هغې سره وطی اوکړله.نوکفاره نه واجبیږی .وجه د توپیر دا ده.چه اول یعنی «والله لا أقربك» یمین دې.او دوهم کلام یمین نه دې.

### د وینځې ایلاء

وَمُدَّةُ إِيلَاءِ الْأَمَةِ شَهْرَانِ اود وینځې د ایلاء موده دوې [دوه] میاشتې ده لِأَنَّ هٰذِهِ مُدَّةٌ ضُرِبَتْ أَجَلًا لِلْبَيْنُونَةِ ځکه چې دا موده د ایلاء د بائنه کیدلو لپاره میعاد مقرر شوې وو فَتَتَنَصَّفُ بِالرِّقِّ كَمُدَّةِ الْعِدَّةِ نودا به د رقیق کیدلو په وجه نیم پاتې کیږی .لکه ( څنګه چه) د عدت موده ( ده).

تشریح:- فرمائی .① که دیوکس ښځه وی .نودهغې د ایلاء موده دوې [دوه] میاشتې دی .برابره ده که آزاد وی اوکه غلام،هم دا قول دحضرت عمر رضی الله عنه دې.② اودامام مالک رحمه الله مذهب دا دې.چه د غلام د ایلاء موده دوې [دوه] میاشتې دی .که دده ښځه وینځه وی اوکه آزاده.③ اوامام شافعی اوامام احمد رحمهما الله فرمائی .چه د آزاد سړی اوآزاده ښځه اووینځه واړه برابردی .اودټولو موده د ایلاء څلورمیاشتې دی .

ⓐ دامام شافعی اوامام احمد رحمهما الله دلیل دا دې.چه د ایلاء موده د ظالم دتشهیر لپاره وی .اوپه دې کې آزاده ښځه اووینځه دواړه برابردی .ځکه چې د جماع د حق په منع کولوکې دواړه ظالمان دی .

ⓑ اوزموږ دلیل دا دې.چه د ایلاء موده (څلورمیاشتې) د بائنې لپاره مقرر شوی دی .نود رقیت په وجه به نیمه موده پاتې شی .لکه څنګه چې د وینزې طلاق اودهغې عدت دآزادې ښځې د طلاق اوعدت په نیمه دې.



## دجماع نه دعجزپه صورت کې دایلاء احکام

وَإِنْ كَانَ الْمُولِي مَرِيضًا لَا يَقْدِرُ عَلَى الْجِمَاعِ اوکه ایلاء کونکې داسې بیمار دې.چه ده ته په جماع باندې قدرت نشته أَوْكَانَتْ مَرِيضَةً یا دا ښځه داسې بیماره وی أَوْرَتْقَاءَ یا د متیازو د لارې نه علاوه بله څه لاره نه وی أَوْصَغِيرَةً لَا تُجَامَعُ یا داسې وړه ماشومه وی .چه دې سره جماع نشی کیدای أَوْكَانَتْ بَيْنَهُمَا مَسَافَةٌ لَا يَقْدِرُ أَنْ يَصِلَ إِلَيْهَا فِي مُدَّةِ الْإِيلَاءِ یا د ښځې اوسړی په مینځ کې دومره لرې والې وی .چه د ایلاء په موده کې ښځې ته د رسیدلو قدرت نه لری فَفَيْئُهُ أَنْ يَقُولَ بِلِسَانِهِ فِئْتُ إِلَيْهَا فِي مُدَّةِ الْإِيلَاءِ نو ( په دې صورتونوکې ) د سړی رجوع کول دادی .چه د ایلاء په موده کې پخپله ژبه اووائی .ما دې ښځې اړخ ته رجوع اوکړله فَإِنْ قَالَ ذٰلِكَ سَقَطَ الْإِيلَاءُ نوکه داسې ئې اووئیل.نوایلاء ساقط شوه

حل اللغة: ① رتقاء: هغه زنانه چې د متیازو د لارې نه ئې سوا بله لاره نه وی ② لسان: ژبه]

تشریح:-صورت د مسئلې دا دې.که ایلاء کونکې داسې بیمار وی .چه دې په جماع کولوباندې قادرنه وی .② یاښځه داسې بیمار ③ یا ښځه رتقاء وی .یعنی د متیازود لارې نه سوه بله لار نه وی .④ یاداسې وړه ماشومه وی .چه دجماع قابله نه وی .⑤ یا د ښځې خاوند په مینځ کې دومره لرې والې وی .چه په څلورمیاشتوکې ورته خاوند نشی رسیدلې.نوپه دې ټولوصورتونوکې خاوند ته د رجوع بالقول اختیار دې.نوکه خاوند په موده د ایلاء کې «فئت إلیها» اووئیل.(یعنی ما ورته رجوع اوکړله)نوایلاء ساقطیږی .

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رحمه الله لَا فَيْءَ إِلَّا بِالْجِمَاعِ اوامام شافعی رحمه الله فرمائی .دجماع نه بغیررجوع نه صحیح کیږی . وَإِلَيْهِ ذَهَبَ الطَّحَاوِيُّ او امام طحاوی رحمه الله هم دې اړخ ته تلې دې لِأَنَّهُ لَوْكَانَ فَيْئًا ځکه که زبانی ونیل رجوع وه لَكَانَ حِنْثًا نودا به حانث کیدل وو

تشریح:-اودامام شافعی رحمه الله مذهب دا دې.چه په ایلاء کې رجوع صرف په جماع سره کیږی .مطلب دا چې امام شافعی رحمه الله په ایلاء کې صرف د رجوع بالجماع قائل دې.د رجوع بالقول قائل نه دې.داحنافو رحمهم الله په مشائخوکې دامام طحاوی رحمه الله رائې هم دا ده. ⓐ دامام شافعی رحمه الله دلیل دا دې.که ژبانی رجوع چرته رجوع وه.نودا به ژبانی قسم ماتول وو.اوچونکه په ژبانی وینا سره قسم نه ماتیږی .نورجوع به هم نه ثابتیږی . لنډیز دا چې رجوع فی الایلاء دوو احکامو ته مستلزمه ده.یووجوب دکفارې،او دوهم انتفاء فرقت،اورجوع بالقول په کفاره کې په اتفاق سره معتبره نه ده.نوپه انتفاء فرقت کې به هم معتبر نه وی .اوهرکله چې په ژبې سره انتفاء فرقت کې معتبر نه دی .نودا رجوع خوبه هم نه وی .نوثابته شوه.چه بغیرجماع رجوع متحقق نه وی .

وَلَنَا أَنَّهُ آذَاهَا بِذِكْرِ الْمَنْعِ او زموږ دلیل دادې.چه سړی خپلې ښځې ته د وطی په انکار سره تکلیف ورکړې وو فَيَكُونُ إِرْضَاؤُهَا بِالْوَعْدِ بِاللِّسَانِ نو ددې راضی کول به په زبانی وعدې سره کیږی وَإِذَا ارْتَفَعَ الظُّلْمُ او هرکله چې ظلم لرې شو لَا يُجَازَى بِالطَّلَاقِ نو په طلاق سره به دې ته سزانشی ورکولې

تشریح:-زموږدلیل دا دې.چه هرکله دې کس د قدرت باوجود جماع اونکړله.نودده د اړخه ظلم متحقق شو.ځکه چې دې کس د ښځې دجماع حق بند کړلو.نودده د اړخه به رجوع په هغه وخت کې ثابتیږی .چه د ښځې حق د جماع په ذریعه باندې ادا کړی .نومعلومه شوه.چه ددې کس رجوع به د جماع په ذریعه ثابتیږی .د قول په ذریعه به نه ثابتیږی .

وَلَوْقَدَرَ عَلَى الْجِمَاعِ فِي الْمُدَّةِ اوکه دې د ایلاء په موده کې په جماع کاوه باندې قادر شو بَطَلَ ذٰلِكَ الْفَيْءُ نودا زبانی رجوع کول باطل شو وَصَارَ فَيْئُهُ بِالْجِمَاعِ او دده رجوع کول په جماع سره شو لِأَنَّهُ قَدَرَ عَلَى الْأَصْلِ قَبْلَ

حُصُولِ الْمَقْصُودِ بِالْخَلَفِ ځکه چې د خلیفه په ذریعه د مقصود حاصلیدلو نه وړاندې دې په اصل باندې قادر شو.

تشریح:- چې په حالت د مرض کې ئې ایلاء کړې وی .اوبیا په موده د ایلاء کې په جماع قادر شی . نواوس به ده رجوع په رجوع بالجماع سره معتبر وی .برابره ده که ده رجوع بالقول کړې وی اوکه نه وی . که رجوع بالقول ئې نه وی کړې.نوبیاخوپه جماع سره رجوع کول ښکاره خبره ده.اوکه رجوع بالقول ئې کړې وی نودصحت نه روسته دغه رجوع باطله شوه.دلیل دا دې.چه دخلیفه په ذریعه د مقصود حاصلولو نه وړاندې دې په اصل باندې قادر شو.نودا داسې شوه.لکه چې یوکس تیمم کړې وی .اود لمانځه په مهال کې په اوبوقادرشی .نودده لمونځ باطلیږی .اوپه اودس سره پرې لمونځ ادا کول واجبیږی .

## د «انت علی حرام» حکم

وَإِذَا قَالَ لِامْرَأَتِهِ اوکه خپلې ښځې ته ئې اووئیل أَنْتِ عَلَيَّ حَرَامٌ ته په ماباندې حرام ئې سُئِلَ عَنْ نِيَّتِهِ نو دده نیت به معلومولې شی فَإِنْ قَالَ أَرَدْتُ الْكَذِبَ نوکه ده اووئیل.چه ما د دروغ وئیلو اراده کړې وه فَهُوَ كَمَا قَالَ نوداسې به وی .لکه دې چې څنګه وائی

تشریح:- صورت د مسئلې دا دې.که یوکس خپلې ښځې ته اووئیل.چه «انت علی حرام» نود ده څخه به د ده د نیت پوښتنه کولې شی .ځکه چې دده دا کلام د څومعانیواحتمال لری .اویوه معنی د بلې معنی نه غوره نه ده.نودیوې معنی د متعین کاوه لپاره به د قائل نیت معلومولې شی :

نوکه دې کس دا اووئیل.چه ما د دروغو اراده کړې وه.نودا به هغه شان وی .څنګه چې هغه وائی .یعنی نه به طلاق واقع کیږی اونه به ایلاء وی .

لِأَنَّهُ نَوَى حَقِيقَةَ كَلَامِهِ ځکه چې ده د خپل کلام حقیقی معنی مراد واخستله وَقِيلَ لَا يُصَدَّقُ فِي الْقَضَاءِ او وئیلې شوی دی .چه قضاءً به تصدیق نشی کولې لِأَنَّهُ يَمِينٌ ظَاهِرًا ځکه چې دا په ښکاره قسم دې

تشریح:- دلیل دا دې.چه دې کس د حقیقی معنی اراده کړې ده.ځکه چې دا ښځه د ده لپاره حلاله وه.بیا دده قول چې «انت علی حرام» داسې خبر دې.چه د واقع مطابق نه دې.نودا به دروغ اوکذب وی .اوچونکه دکلام دحقیقی معنی نیت کول شرعاً معتبر وی .نوځکه به دلته هم د دې سړی نیت معتبر وی .

اَخوپه دې دلیل به اشکال کیږی .هغه دا که دروغ د ده د کلام «انت علی حرام» حقیقی معنی وی . نو پکار دا ده.چه بغیرنیته معتبر وو.ځکه چې حقیقت د نیت محتاج نه وی .

اَخواب دا دې.چه کذب اودروغ حقیقت اولی دې.اویمین حقیقت ثانیه دې.اوچه لفظ په ګڼرو معانیو کې مشترک وی .نوپه دې صورت کې د یوې معنی متعین کاوه لپاره نیت ضروری وی .(فتح القدیر)

اَمام طحاوی اوامام کرخی رحمهما الله فرمائیلی دی .چه قاضی دې د کذب په اراده کولوکې ددې کس تصدیق نه کوی .ځکه چې دده «انت علی حرام» په ظاهره قسم دې.نوځکه دا حلال لره حراموی دی .اود حلال حرامول یمین کیدل په نص سره ثابت دې.اونص دا دې.((يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ لِمَ تُحَرِّمُ مَا أَحَلَّ اللَّهُ لَكَ تَبْتَغِي مَرْضَاتَ أَزْوَاجِكَ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَحِيمٌ قَدْ فَرَضَ اللَّهُ لَكُمْ تَحِلَّةَ أَيْمَانِكُمْ)) اې پیغمبره کوم شیان (څیزونه ) چې الله تعالی تا لپاره حلال کړی دی .هغه ولې په ځان باندې حراموې.(آیا) دخپلوبیبیانوخوښې لټوې.اوالله تعالی بخونکې او مهربانه دې.الله تعالی ستاسو لپاره د قسم ماتول هم فرض کړې دی .(حقانی)

اَپه دې آیت کې الله تعالی د حلال څیزحرامولوته قسم وئیلې دې.نوثابته شوه.چه تحریم د حلال قسم دې.حاصل دا چې په «انت علی حرام» کې د قسم معنی ښکاره اود کذب معنی خلاف ظاهر ده.اوچه کوم څیزخلاف ظاهر وی . قضاءً دهغې تصدیق نشی کولې.نوځکه به قاضی په دې خبره کې دده تصدیق نه کوی



چه ما دروغ اراده کړې وو.صاحب دفتح القدیرلیکلی دی .چه دا قول زیات صحیح دې.اوهم په دې باندې عمل او فتوی ده.

وَإِنْ قَالَ أَرَدْتُ الطَّلَاقَ اوکه ده اووئیل.چه ما د طلاق نیت کړې وو فَهِيَ تَطْلِيقَةٌ بَائِنَةٌ نو یو بائنه طلاق به واقع کیږی إِلَّا أَنْ يَنْوِيَ الثَّلَاثَ خو که ده د درې طلاقو نیت کړې وو.(نو بیا به بائنه نه وی ) وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ فِي الْكِنَايَاتِ اودا موږ په باب کنایات الطلاق کې ذکر کړی دی

تشریح:-اوکه دې کس په خپلې دې وینا چې «انت علی حرام» سره طلاق اراده کړې وی .اودطلاق د شمار نیت ئې نه وی کړې.یا ئې د یو یا د دوو طلاقو نیت کړې وی .نوپه دې درې واړه صورتونوکې به په یوطلاق بائنه کیږی .اوکه د درې طلاقو نیت ئې کړې وی .نوپه دې به درې طلاق واقع کیږی .دلیل دا دې.چه «انت علی حرام» دکنایاتوپه الفاظوکې دې.او وړاندې د کنایاتو په الفاظوباندې بحث تیرشوې دې.هغه دې هلته اوکتلې شی .

وَإِنْ قَالَ أَرَدْتُ الظِّهَارَ اوکه ده اووئیل.چه ما د ظهار قصد کړې وو فَهُوَ ظِهَارٌ نودا به ظهار وی وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رحمهما الله ([1]) او ددې ظهار کیدل د ابوحنیفه اود ابویوسف رحمهما الله په نیز دی وَقَالَ مُحَمَّدٌ رحمه الله لَيْسَ بِظِهَارٍ او امام محمد رحمه الله فرمائی .چه دا ظهار نه دې لِانْعِدَامِ التَّشْبِيهِ بِالْمُحَرَّمَةِ ځکه چې محرمه ابدیه سره تشبیه معدوم ده وَهُوَ الرُّكْنُ فِيهِ حالانکه په ظهارکې تشبیه رکن دې وَلَهُمَا أَنَّهُ أَطْلَقَ الْحُرْمَةَ اود شیخینو رحمهما الله دلیل دا دې.چه ده مطلق حرام وئیلی دی وَفِي الظِّهَارِ نَوْعُ حُرْمَةٍ او په ظهارکې یو قسم حرمت وی وَالْمُطْلَقُ يَحْتَمِلُ الْمُقَيَّدَ او مطلق د مقید احتمال لری

تشریح:-اوکه دې کس اوئیل.چه زما په دې سره ظهارمراد وو.نود شیخینو رحمهما الله په نیزبه دا ظهاروی .اودامام محمد رحمه الله په نیزبه ظهارنه وی .

اَدامام محمد رحمه الله دلیل دا دې.چه ظهاروائی محلله (حلاله ښځه) د محرمه (چا سره چې همیشه لپاره نکاح کول حرام وی ) سره تشبیه ورکولوته وائی .اوپه ظهارکې هم تشبیه ورکول رکن دې.اودلته چونکه حرف تشبیه موجود نه دې.ددې امله دا ظهارنه دې.

اَدشیخینو رحمهما الله دلیل دا دې.چه قائل په خپل کلام «انت علی حرام» کې د حرمت مطلق ذکرکړې دې.اولفظ د حرمت د څوالفاظوانواعو احتمال لری .دحرمت بالطلاق هم او د حرمت بالظهارهم، لنډیز دا چې ظهارهم د حرمت یوه نوع ده.نوظهارد مطلق حرمت د محتملاتوڅنې دې.اوقاعده دا ده.چه څوك د خپل کلام په محتملاتوکې د کوم محتمل نیت کوی .دده تصدیق به کولې شی .نوځکه به دلته د خاوند یعنی قائل د اړخه د ظهارنیت معتبر وی .

وَإِنْ قَالَ أَرَدْتُ التَّحْرِيمَ اوکه ده اووئیل.چه ما( ددې ښځې ) حرام کول مراد وو أَوْ لَمْ أُرِدْ بِهِ شَيْئًا یا وې وئیل.چه ما هیڅ هم مراد نه دی اخستې فَهُوَ يَمِينٌ يَصِيرُ بِهِ مُولِيًا نودا قسم دې.ددې په وجه به ایلاء کونکې وی لِأَنَّ الْأَصْلَ فِي تَحْرِيمِ الْحَلَالِ إِنَّمَا هُوَ يَمِينٌ عِنْدَنَا ځکه چې حلال حرامولو کې زموږ په نیز اصل هم دادی .چه دا قسم کیږی وَسَنَذْكُرُهُ فِي الْأَيْمَانِ إِنْ شَاءَ اللَّهُ او نژدې به دا موږ په باب الایمان کې انشاء الله بیان کړو .وَمِنَ الْمَشَايِخِ مَنْ يَصْرِفُ لَفْظَةَ التَّحْرِيمِ إِلَى الطَّلَاقِ مِنْ غَيْرِ نِيَّةٍ بِحُكْمِ الْعُرْفِ، وَاللَّهُ أَعْلَمُ بِالصَّوَابِ او په مشائخوکې بعض حضرات لفظ د تحریم د نیت نه بغیر طلاق اړخ ته ګرځوی .د عرف د حکم په وجه.والله اعلم بالصواب

[1]) القول الراجح هو قول الشیخین رحمهما الله کذا فی فتح القدیر(۴\۵۶) والدر المنتقی (۱\۴۴۶) وردالمحتار(۲\۶۰۰) والبحرالرائق (۴\۶۸) والهندیة (۱\۴۸۷) نقلاً عن القول الراجح (۱\۳۴۴)-

Scanned with CamScanner

**تشریح:**-اوکه ده اوونیل چه ما دښځې دحرامولو نیت کړې وو.یا دا چې ما د څه نیت هم نه وو کړې.نودا به یمین وی .اوددې په وجه به دې ایلاء کونکې شی .نوکه ده په څلورمیاشتوکې دننه دننه وطی اوکړله.نوکفاره به پرې لازمه شی .اوکه وطی ئې اونکړله.نوتردې چې څلورمیاشتې تیرې شوې.نود ایلاء په وجه به بائنه شی دتحریم مراد اخستلوپه صورت کې دلیل دا دې.چه حلال حرامولوکې اصل دا دې.چه هغه زموږ په نیزیمین دې.خکه چې دالله تعالی ارشاد دې.((يَاأَيُّهَا النَّبِيُّ لِمَ تُحَرِّمُ مَا أَحَلَّ اللَّهُ لَكَ تَبْتَغِي مَرْضَاتَ أَزْوَاجِكَ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَحِيمٌ ۝ قَدْ فَرَضَ اللَّهُ لَكُمْ تَحِلَّةَ أَيْمَانِكُمْ)) ژباړه او وجه د استدلال وړاندې تیرشوی دی .

اوکه دڅه نیت ئې نه وی کړې.نودا به یمین وی .خکه چې په یمین سره کوم حرمت ثابتیږی .هغه د ادنی درې وی .خکه چې په ایلاء کې دکفاره نه وړاندې وطی کول حلال دی .اوپه ظهار کې داسې نه دی .اوپه ایلاء کې فی الحال وطی نه واجبیږی .بلکه چې څلور میاشتې تیرې شی .نوددې نه روسته حرمت ثابتیږی . اوپه ظهارکې فی الحال حرمت ثابتیږی .اودغه ډول حرمت بالایلاء ادنی ده د حرمت بالطلاق نه،خکه که طلاق ترې مراد واخلی .نوطلاق بائن به واقع شی .اووطی به حرامه شی .اوایلاء وطی نه حراموی .نوهرکله چې حرمت یمین ادنی دې.نود متیقن په وجه به هم هغه متعین وی .انشاءالله په کتاب الایمان کې په تفصیل سره کلام اوکړې شی .

اوپه مشائخو رحمهم الله کې بعضې حضرات د «انت علـی حـرام» لفظ کې بغیرد نیت نه طلاق اړخ ته اړوی .اودلیل عرف ګرخوی .خکه چې زموږ په زمانه کې خلګ د «انت علی حرام» نه هم طلاق مراد اخلی .فقیه ابوالليث رحمه الله هم دا خبره اختیارکړې ده.والله اعلم

## باب الخلع

ژباړه:- (دا) باب (په احکامود) خلع (کې) دې .

**تشریح:**- لغوی تحقیق دا دې.چه خلع نوم دې د دوی د دې قـول چې «خالعت المرأة زوجها، اواختلعت منه بمالها» خلع د خاء په ضمه او فتح دواړوسره راخی .معنی ئې ده نزع،یعنی جلا کول او ویستل،لکه چې دالله تعالی ارشاد دې.((فَاخْلَعْ نَعْلَيْكَ)) یعنی خپلې دواړه پڼړې اوباسه،خوخلع د خاء پـه فـتـح د نـزع حقیقی لپاره استعمالیږی .اوخلع په ضمه سره د نزع مجازی دپاره،

په شریعت کې خلع وائی د ښځې نه په لفظ د خلع سره د ملك نکاح په مقابله کې ال اخستل،اودخلع شرط هغه دې کوم چې د طلاق شرط دې.اوددې حکم طلاق بائن واقع کیدل دی .اوددې صفت دامام ابوحنیفه رحمه الله په نیزد خاوند د اړخه خلع یمین دې.اودښځې داړخه معاوضه ده.نودسړی داړخه به د یمین د احکامو خیال ساتلې شی .اودښځې داړخه به د معاوضه داحکامو.اودصاحبینو رحمهما الله په نیزخلع د دواړو طرفونه یمین دې.

ته زیاته نزدې وی .ددې په خلاف خلع خکه چې په هغې کې د انجلی داړخه د معاوضه معنی موجود وی . نه د دوو وجوهو له کبله روستو کړله.① یوددې امله چې په ایلاء کې مال نه وی . نودا طلاق ② دوهم ددې امله چې دایلاء بناء د خاوند داړخه په نشوزاو نافرمانئ باندې وی .اودخلع بناء د ښځې داړخه په نشوز او نافرمانئ باندې وی .نودکوم څیزتعلق چې د سړی سره دې.یعنی ایلاء هغه ئې وړاندې بیان کړلو.اودکوم څیزتعلق چې د ښځې سره دې.یعنی خلع نودا به روستو بیانولې شی .(عنایه) ③ دریمه وجه دا کیدای شی .چه ایلاء په منزله د مفرد ده.اوخلع د ښځې داړخه مال وی .نوخکه دا په منزله د مرکب شوه.اوچونکه مفرد مقدم وی په مرکب باندې،نوخکه ئې ایلاء وړاندې اوخلع روستو بیان کړه.

دخلع مشروعیت اود خلع مشروعیت دکتاب الله،سنت ،اجماع امت او دلیل عقلی څلورو واړو نه ثابت ① کتاب الله مثلاً دالله تعالی ارشاد دې.((فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا فِيمَا افْتَدَتْ بِهِ)) یعنی په دې دواړو باندې څه ګناه نه چه ښځه فدیه ورکړی .(دخپل خان) ② اوسنت رسول دا دې.« إن جميلة كانت تحت ثابت بـن قـيس بـن



شماس فجاءت إلى رسول الله ﷺ وقالت لا أرغب على ثابت في دين ولاخلق ولكنى أخشى الكفـر في الإسلام لـشدة بغضى إياه فقال عليه السلام أتردين عليه حديقته فقالت نعم،وزيادة فقال عليه السلام أما الزيادة فلا» یعنی جمیله ښځه د ثابت بن قیس بن شماس په نکاح کې وه.هغه رسول الله ﷺ ته راغله.اوونې ونیل.چه زه ثابت بن قیس رضی الله عنه ته د دین اواخلاقوپه اعتبارسره بد نه وایم.البته زه د نفاق مع الاسلام نه ویریږم.خکه چې زما دده نه ډیرزیات نفرت دې.نبی ﷺ ورته اورفرمائیل.ته به ده ته دده باغ واپس کړې.هغې اوونیل.آوجی اوزیاتی به هم ورکړم.نبی ﷺ اوفرمائیل.دزیاتی څه اړتیا نشته.ددې آیت اوحدیث نه معلومه شوه.چه ښځه د خپل خان آزادولو لپاره دخپل اړخه عـوض ورکـولې شـی .اوهم ددې نـوم خلع دې.③ اودخلع په مشروعیت باندې اجماع هم ده.اوعقلی دلیل دا دې.چه ملك نکاح قیاس کړې شوې دې په ملك قصاص باندې،یعنی لکه څنګه چې ملك قصاص مال نه دې.خوددې عوض اخستل جائزدی .دغه ډول نکاح هم اګرچه مال نه دې.خوددې عوض اخستل جائزدی .اوچه عوض واخلی اوطلاق ورکړی .د دې نوم خلع دې.

## د کورنه جوړیدو په صورت کې خلع کول

| |
|---|
| وَإِذَا تَشَاقَّ الزَّوْجَانِ اوکله چې ښځه خاوند خپل منځ کښې جګړه اوکړی وَخَافَا أَنْ لَا يُقِيمَا حُدُودَ اللَّهِ او دواړوته دایره وی .چه د الله تعالی حدودبه قائم اونه ساتی فَلَا بَأْسَ بِأَنْ تَفْتَدِيَ نَفْسَهَا مِنْهُ بِمَالٍ يَخْلَعُهَا بِهِ نو هیڅ باك نشته.چه ښځه ده ته د خپل خان فدیه ورکړی .په داسې مال سره چې د هغې په ذریعه خاوند دې ته خلع ورکړی |

حل اللغة: ① تشاق: مخالفت کوی د یوبل ② تفتدی: فدیه ورکوی ]

**تشریح:**- صورت د مسئلې دا دې.که ښځه خاوند په خپل مینځ کې جګړې کوی .اودا محسوس کړی .چه اوس دالله تعالی حدود یعنی حقوق زوجیت نشی ادا کیدې.نوپه دې کې څه قباحت نشته.چه ښځه دخپل خان خلاصولو لپاره خاوند ته فدیه ورکړی .او خاوند د دغه مال په بدله کې د خلع په ذریعه دې ته طلاق ورکړی

| |
|---|
| لِقَوْلِهِ تَعَالَى دلیل د الله تعالی قول ((فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا فِيمَا افْتَدَتْ بِهِ)) دې {فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا فِيمَا افْتَدَتْ بِهِ} یعنی په دوی دواړو باندې هیڅ باك نشته.چه ښځه ده ته فدیه ورکړی |

**تشریح:**- دلیل دالله تعالی ارشاد دې.((فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا فِيمَا افْتَدَتْ بِهِ)) د آیت مطلب دا دې.چه په سړی باندې ګناه نشته په فدیه اخستلوکې اوپه ښځه باندې ګناه نشته د فدیه په ورکولوکې ،دا فدیه ورکول په حقیقت کې خپل خان د قید نه د خلاصولو لپاره وی .خکه چې ښځې دخپلوخاوندانوسره د قید په درجه کې وی .خکه چې نبی ﷺ د ښځونوم «اساری» ذکرکړې دې.ارشاد دې.« إتقوا الله في النساء فإنهن عنـدكم عـوان» یعنی دښځوپه اړه کې دالله تعالی نه ویره اوکړئ.خکه چې دوی تاسوسره قیدیانې دی .(ترمذی منقول ازعینی شرح هدایه) اوجارالله زمخشری بیان کړې دې.چه دا آیت ((فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا فِيمَا افْتَدَتْ بِهِ)) د ثابت اودهغوی د بی بی رضی الله عنهما په اړه کې نازل شوې وو.اودا په اسلام کې د ټولونه لومړئی خلع وه.دا حدیث په باب الخلع کې په تفصیل سره بیـان کـړې شـوې دې.عینـی د ثابـت دښځـې درې نومونـه ذکـر کـړی دی .① حبیبه ② حمیله③جمیله،

| |
|---|
| فَإِذَا فَعَلَا ذَلِكَ نو هرکله چې خاوند اوښځې داسې اوکړل وَقَعَ بِالْخُلْعِ تَطْلِيقَةٌ بَائِنَةٌ نود خلع په وجه به یو طلاق بائن |

واقع شی **وَلَزِمَهَا الْمَالُ** او په ښځه په مال لازم وی **لِقَوْلِهِ ﷺ {اَلْخُلْعُ تَطْلِيقَةٌ بَائِنَةٌ}** (١) خکه نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی .چه خلع ورکول یو طلاق بائن دي

**تشریح:-** کله چي ښځي خاوند دا کاراوکړلو .یعنی ښځي فدیه ورکړله.اوخاوند خلع اوکړله.نوددي په وجه په ښځه یوطلاق بائن واقع شو.اوپه ښځه باندي مال واجب شو.

دلیل د نبی ﷺ ارشاد دي.چه «الخلع تطلیقة بائنة» ② دوهم دلیل کوم چي دامام شافعی رحمه الله د خواب هم دي.هغه دا دي.چه نکاح د مکمل اوپوره کیدو نه روسته د فسخ احتمال نه لری .اودعقلی دلیل کفاءت،خیارعتق اوخیاربلوغ په وجه فسخ قبل التمام ده.بعدالتمام نه ده.نوددي درې واړو څیزونود امله نکاح د پوره کیدو نه بندیږی .فسخ نه ده.اوپاتې شوه خلع نودا د عقد دتمام نه روسته وی .اوعدم روسته د فسخ احتمال نه لری .نوځکه خلع ته د نکاح فسخ نشی وئیلې.البته د نکاح د تمام نه روسته دقطع فی الحال احتمال لری .ددي امله زموږ درخواست دي.چه دخلع نه دي رفع د قید اوقطع د نکاح مراد واخستې شی .اورفع د قید اوقطع نکاح نوم دي دطلاق،نوثابته شوه چي خلع طلاق دي فسخ د نکاح نه ده.

**وَلِأَنَّهُ يَحْتَمِلُ الطَّلَاقَ حَتّٰى صَارَ مِنَ الْكِنَايَاتِ** او خکه چي خلع ورکول د یو طلاق احتمال لری .تردې چي دا د کنایه په طلاقونوکي شو **وَالْوَاقِعُ بِالْكِنَايَةِ بَائِنٌ** او په کنائی طلاقونو سره چي کوم طلاق واقع کیږی .هغه بائنه وی

**تشریح:** صاحب دهدایه رحمه الله دخلع په ذریعه دطلاق بائن د واقع کیدو دوې [دوه] نوردلائل ذکرکړی دی .یودا چي لفظ د خلع د طلاق احتمال لری .که یوکس خپلې ښځي ته اووئیل.« خالعتك یا خلعتك» اودطلاق نیت نې کړی وی .نویوطلاق بائن واقع کیږی . لنډیز دا چي لفظ دخلع د کنایات طلاق څنی دي.اودکنایه په الفاظو سره طلاق بائن واقع کیږی .سوا د درې کلماتونه،چه «انت واحدة،إعتدی،إستبری رحمك»

**إِلَّا أَنَّ ذِكْرَ الْمَالِ أَغْنٰى عَنِ النِّيَّةِ هُنَا** خودلته کي د مال ذکرکول، د نیت نه بې نیازه کړل **وَلِأَنَّهَا لَا تُسَلِّمُ الْمَالَ** او خکه چي ښځه (ذمه داری د) مال نه قبلوی **إِلَّا لِتَسْلَمَ لَهَا نَفْسُهَا وَذٰلِكَ بِالْبَيْنُونَةِ** مګر ددې لپاره چي ددې نفس ددې په قبضه کي شی .اودا به په بائنه کیدو سره کیږی .

**تشریح:-** «الاأن ذکرالمال» په دې سره دسوال خواب دي.سوال دا دي.چه هرکله دلفظ د خلع د کنایات طلاق څنی دي.نو پکار دا ده.چه په دې کي نیت دطلاق شرط وې.حالانکه په خلع کي نیت دطلاق شرط نه دي.

خواب دا دي.چه لفظ دخلع د څومعانیواحتمال لری .① دجامونه وتل،② د نیکونه وتل،③ دنکاح نه وتل،خوچه هرکله نې دبدل خلع ذکراوکړلو.نودنکاح نه د وتلو معنی متعین شوه.نوځکه دنیت اړتیا پاتې نشو.

دوهم دلیل دا دي.چه ښځي دمال ذمه واری په هغه وخت کي قبلوی .کله چي دې ته د واړه نفس اوسپارلې شی .اوښځې ته هغې د نفس حواله کول صرف په طلاق بائن سره کیږی په طلاق رجعی سره نه کیږی .ددې امله موږ وایو.چه خلع طلاق بائن دي طلاق رجعی نه دي.

## د سړی داړخه د ظلم په صورت کي د خلع اخستلوکراهت

**وَإِنْ كَانَ النُّشُوزُ مِنْ قِبَلِهِ** اوکه نافرمانی د خاوند د اړخه وی **يُكْرَهُ لَهُ أَنْ يَأْخُذَ مِنْهَا عِوَضًا** نود خاوند لپاره مکروه دی .چه د ښځي نه عوض واخلی **لِقَوْلِهِ تَعَالٰى** خکه د الله تعالی قول دي **{وَإِنْ أَرَدْتُمُ اسْتِبْدَالَ زَوْجٍ مَكَانَ زَوْجٍ}** **إِلٰى أَنْ قَالَ {فَلَا تَأْخُذُوا مِنْهُ شَيْئًا}** که تاسو د یوې ښځي په ځائې بله بدلول اوغواړئ.تردې فرمائی چي ددې نه هیڅ مه اخلئ.





[**حل اللغة:** ① **النشوز:** سرکشی ]

**تشریح:-** نشوز دښځي دخپل خاوند نافرمانی کول اونفرت کول دی .زجاج فرمائیلی دی .چه نشوزد دواړو طرفونونه کیږی .یعنی په زوجینوکي دهریوکس بل لره نه خوښول ښکاره کول،

صورت د مسئلې دا دي.که نشوزاوناخوښی د سړی داړخه وی .نودسړی لپاره دښځي نه د بدل خلع په طور د څه څیزاخستل مکروه دی .دلیل دالله تعالی ارشاد دي.«وَإِنْ أَرَدْتُمُ اسْتِبْدَالَ زَوْجٍ مَكَانَ زَوْجٍ وَآتَيْتُمْ إِحْدَاهُنَّ قِنْطَارًا فَلَا تَأْخُذُوا مِنْهُ شَيْئًا أَتَأْخُذُونَهُ بُهْتَانًا وَإِثْمًا مُبِينًا» اوکه تاسود یوې بی بی په ځائې د بلې بی بی بدلولواراده لرئ.حالانکه تاسویوې ته ډیر مهروکړې وی .نوپه دې کي ترې څه مه اخلئ.آیا تاسودا اخلئ په تهمت لګولو او ښکاره ګناه کولوسره،

« ① قنطار» د غوئی د څرمن دډکوالی په برابری سره زریا سپین زر دی .② اوبعضو وئیلی دی .چه اویا زره دیناره،③ اوبعضووئیلی دی .چه یوزردوې [دوه] سوه اوقیه،اویوه اوقیه څلویښت درهم وی .
④ اوزمخشری وئیلی دی .چه «قنطار» دیرمال ته وائی .بهرحال په دې آیت کي دښځي نه د څه څیزداخستلوکراهت ښکاره موجود دي.نوځکه دښځي نه عوض اخستل مکروه اوګرځولې شو.البته که خاوند واخستل، نو دکراهت باوجود جائزدی .ځکه چي په «فلاتأخذوا منه» کي نهی لغیره ده.اودنهی لغیره د امله مشروعیت ذاتی نه منتفی کیږی .لکه د جمعې په ورځ د اذان په وخت کي خرڅول اخستل مشروع لذاته اوممنوع لغیره دی .

**وَلِأَنَّهُ أَوْحَشَهَا بِالْإِسْتِبْدَالِ** او ځکه چي خاوند د ښځي بدلولوسره دا په یره کي واچوله **فَلَا يَزِيدُ فِي وَحْشَتِهَا بِأَخْذِ الْمَالِ** نو مال اخستلو سره دې ددې په یره کي زیاتوالې نه کوی .

[**حل اللغة:** ① **اوحش:** اویروله ② **الاستبدال:** بدلول ③ **وحشة:** ویره ]

**تشریح:-** دوهم دلیل دا دي.چه دې کس د سابقه ښځي په ځائې بله ښځه رواستله.نو لومړنی نې په ویره کي واچوله.نوځکه اوس ددې نه د مال په اخستلوسره دا په زیاتی وحشت کي اچول نه دی پکار.

## دناشزې ښځي نه د مهرنه د زیاتي وصولئ کراهت

**وَإِنْ كَانَ النُّشُوزُ مِنْهَا** اوکه نافرمانی د ښځي د اړخه وی **كَرِهْنَا لَهُ أَنْ يَأْخُذَ مِنْهَا أَكْثَرَ مِمَّا أَعْطَاهَا** نو موږ د خاوند لپاره مکروه ګڼرو.چه د ښځي نه د هغې نه زیات واخلی .کوم نې چي دې له ورکړی دی) **وَفِي رِوَايَةِ الْجَامِعِ الصَّغِيرِ طَابَ الْفَضْلُ أَيْضًا لِإِطْلَاقِ مَا تَلَوْنَا بَدْءًا** اود جامع صغیر په روایت کي دی .چه زیاتی اخستل هم جائز دی .ددې آیت مطلق کیدلو په وجه کوم چي وړاندې تلاوت کړې شو

[**حل اللغة:** ① **طاب:** جائز دی ② **الفضل:** زیاتی ]

**تشریح:-** مسئله دا ده.که ښځه ناشزه وی .نود مهردمقدارپورې اخستل د خاوند لپاره بغیرکراهته جائزدی .البته د مهردمقدار نه زیاتی اخستل ورله د مبسوط د روایت مطابق مکروه دی .اودجامع صغیرد روایت مطابق بغیرکراهته جائزدی .

دعدم کراهت دلیل هغه آیت دي.کوم چي وړاندې تیرشو.یعنی «فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا فِيمَا افْتَدَتْ بِهِ» اودا آیت د خپل اطلاق په وجه قلیل اوکثیر مهر اوغیرمهرټولو ته ګډ دي.

**وَوَجْهُ الْأُخْرٰى قَوْلُهُ ﷺ فِي امْرَأَةِ ثَابِتِ بْنِ قَيْسِ بْنِ شَمَّاسٍ {أَمَّا الزِّيَادَةُ فَلَا}** (١) اود دوهم روایت په وجه د ثابت بن

(١) من حدیث عطاء وابی الزبیر رحمهما الله مرسلاً أما حدیث عطاء فأخرجه ابوداود فی مراسیله وأما حدیث ابی الزبیر فأخرجه الدارقطنی فی سننه (نصب الرأیة ۳/۳۴۹)_

قيس بن شماس د ښځې په اړه کي د نبی کریمﷺ قول «أما الزيادة فلا» دي وَقَدْ كَانَ النُّشُوزُ مِنْهَا حالانکه نافرمانی دښځې د اړخه وه.

تشريح:-اودمهرپه مقدارباندې د زيادت دکراهت دليل دا دې.چه دثابت بن قيس بن شماسﷺ بی بی ته نبیﷺ ارشاد فرمائیلې وو.«وأما الزيادة فلا» يعنی نبیﷺ د زيادت نفی کړې ده.نوهرکله چې اباحت منتفی شو.اوکراهت ثابت شو.دا حديث په تفصيل سره د باب په اول کي ذکرشوې دې.

## د مهرنه د زياتي وصولئ حکم

وَلَوْ أَخَذَ الزِّيَادَةَ اوکه ( دمهر نه ئې) زيات واخستل جَازَ فِي الْقَضَاءِ نو قضاءً جائز دی وَكَذَلِكَ إِذَا أَخَذَ اوهم دغه شان چې کله واخلی وَالنُّشُوزُ مِنْهُ حالانکه نافرمانی د خاوند د اړخه ده

تشريح:- مسئله دا ده.که ښځه ناشزه اونافرمانه وی .اوپه دې صورت کي ترې خاوند د مهردمقدار نه زياتی برخه واخستله.نوقضاء جائزده.اودغه ډول که نشوز د خاوند د اړخه وی .اوبيا هم ده د مهرد مقدار نه زياتی واخستله. نو دا هنم شرعاً جائزده.

لِأَنَّ مُقْتَضَى مَا تَلَوْنَا شَيْئَانِ الْجَوَازُ حُكْمًا وَالْإِبَاحَةُ ځکه موږ چې کوم آيت تلاوت کړو.د هغې مقتضی دوې [دوه] شيان (څيزونه ) دی .يو حکماً جائز کيدل.او دوهم مباح کيدل وَقَدْ تُرِكَ الْعَمَلُ فِي حَقِّ الْإِبَاحَةِ لِمُعَارِضٍ اود اباحت په حق کي د معاوض په وجه عمل متروك شو فَبَقِيَ مَعْمُولًا فِي الْبَاقِي نود پاته په حق کي ( آيت باندې) عمل پاتې شو.

تشريح:-دليل دا دی.چه د «فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا فِيمَا افْتَدَتْ بِهِ» آيت متقتضی دوې [دوه] شيان (څيزونه ) دی .① شرعاً جواز② اباحت،يعنی ،اوپه اباحت اوجوازکي توپير دا دې.چه داباحت ضد کراهت دې.اودجواز ضد حرمت دې.نوکوم څيزچه مباح وی .هغه به جائزخامخا وی .خود جائز لپاره مباح کيدل ضروری نه دی .مثلاً دجمعې په ورځ د اذان په وخت کي خرڅول اواخستل جائزدی .خومباح نه دی .بلکه مکروه دې .نومعلومه شوه.چه جواز اوکراهت دواړه جمع کيدای شی .

اوس به طريقه د استدلال دا وی .چه داباحت په حق کي د معارض يعنی د نبیﷺ ارشاد چې «دما الزيادة فلا» په وجه آيت معمول بها پاتې نشو.اوچونکه د جواز په حق کي څه معارض نشته.نوځکه د جواز په حق کي به په آيت باندې عمل پاته وی .ځکه چې د اباحت نفی د جوازد نفی سره مستلزمه نه ده. نو ثابته شوه.چه دمهرنه زياتی اخستل د خاوند لپاره جائز خو دی .خومباح نه بلکه مکروه دی .

## د طلاق په عوض کي مال اخستل

وَإِنْ طَلَّقَهَا عَلَى مَالٍ فَقَبِلَتْ اوکه دې ته خاوند په مال باندې طلاق ورکړو.بيادې قبول کړو وَقَعَ الطَّلَاقُ وَلَزِمَهَا الْمَالُ نو طلاق واقع شو.او په ښځه به مال لازم وی

تشريح:-صورت د مسئلې دا دې.که خاوند ښځې ته په مال باندې طلاق ورکړلو.مثلاً دا ئې ورته اووئيل. «أنت طالق بألف درهم يا أنت طالق على ألف درهم» اوښځې دا قبول کړلو.نوطلاق به واقع شی . او دښځې په ذمه به دا لازم وی .

لِأَنَّ الزَّوْجَ يَسْتَبِدُّ بِالطَّلَاقِ تَنْجِيزًا وَتَعْلِيقًا ځکه چې خاوند طلاق منجز يا په طلاق معلق ورکولوکي مستقل ده وَقَدْ عَلَّقَهُ بِقَبُولِهَا او حال دادې.چه ده طلاق دښځې په قبلولو باندې معلق کړې دې وَالْمَرْأَةُ تَمْلِكُ الْتِزَامَ الْمَالِ او ښځې ته پخپله ذمه د مال لازمولو اختيار دې لِوِلَايَتِهَا عَلَى نَفْسِهَا ځکه چې دې ښځې ته په خپل نفس باندې ولايت حاصل دې وَمِلْكُ النِّكَاحِ مِمَّا يَجُوزُ الِاعْتِيَاضُ عَنْهُ وَإِنْ لَمْ يَكُنْ مَالًا كَالْقِصَاصِ او ملك نکاح داسې شی دې.چه



ددې عوض اخستل جائز دی .اګرچه دا مال نه وی .لکه قصاص،

حل اللغة: ① الاعتياض: عوض اخستل ② التزام: لازمول]

تشريح:-دليل دا دې.چه دا تصرف معاوضه دې.اوتصرف معاوضه موقوف وی په اهليت د متعاوضين اوپه صلاحيت دمحل باندې،اودا واړه موجود دی .د خاوند تصرف خوځکه ثابت دې.چه ده ته فی الحال دطلاق يا دمعلق طلاق ور کاوه مستقل اختيارحاصل دې.اودلته ده طلاق د ښځې په قبلولوپورې معلق کړې دې.نوددې قبلول به شرط وی .اوکه قبول نې کړلو.نوطلاق به واقع وی .اوپه دې به مال لازم وی .ګنی نه به وی لازم.اودښځې اهليت ځکه ثابت دې.چه دا په خپل ځان باندې د مال د لازمولومالکه ده.ځکه چې دې ته په خپل ځان باندې پوره پوره ولايت حاصل دې.اومحل ځکه صالح دې.چه ملك نکاح داسې څيزدې.چه ددې عوض اختستل جائزدی .اګرچه مال نه دې.لکه څنګه چې قصاص اګرچه مال نه دې.خوعوض اختستل ئې جائزدې.اود دواړو په مينځ کي جامع د اهل التزام د اړخه د التزام وجود دې.

وَكَانَ الطَّلَاقُ بَائِنًا لِمَا بَيَّنَّا اودا به طلاق بائنه وی .د هغه دليل په وجه چې موږ بيان کړو وَلِأَنَّهُ مُعَاوَضَةُ الْمَالِ بِالنَّفْسِ اوځکه چې دا د ذات معاوضه ده.په مال سره وَقَدْ مَلَكَ الزَّوْجُ أَحَدَ الْبَدَلَيْنِ فَتَمْلِكُ هِيَ الْآخَرَ اوحال داچه خاوند د احدالبدلين مالك شو.نو ښځه به د دوهم مالك وی وَهِيَ النَّفْسُ تَحْقِيقًا لِلْمُسَاوَاةِ او هغه ( ددې) ذات دې.چه ( په دواړوکي ) برابری ثابت وی .

تشريح:-اودمال په عوض کي چې کله طلاق واقع شی .هغه به طلاق بائن وی .يودليل خووړاندې تيرشو.چه دښځې په ذمه به مال په هغه وخت کي واجب وی .چه ددې نفس دې ته په حواله شی .اودا خبره حاصليږی په طلاق بائن سره،ځکه به طلاق بائن واقع کيږی . دوهم دليل دا دې.چه دا طلاق علی مال معاوضة مال بالنفس دې.يعنی ښځې دخپل ځان د خلاصی لپاره خاوند ته مال ورکول منظور کړلو.او خاوند يوبدل يعنی دمال مالك شو.نوځکه ښځه د دوهم بدل يعنی نفس مالکه کيږی .چه مساوات پيدا شی .اوښځه دخپل ځان مالکه په طلاق بائن سره ګرځی .په طلاق رجعی نه ګرځی . ځکه چې په طلاق رجعی کي دخاوندحق نه ختميږی .نوثابته شوه.چه په طلاق علی المال باندې طلاق بائن واقع کيږی

## دمسلمان په حرام څه يزباندې د خلع حکم

قَالَ قدوری رحمه الله فرمانی وَإِنْ بَطَلَ الْعِوَضُ فِي الْخُلْعِ مِثْلَ أَنْ يُخَالِعَ الْمُسْلِمُ عَلَى خَمْرٍ أَوْ خِنْزِيرٍ أَوْ مَيْتَةٍ اوکه په خلع کي عوض باطل وی .لکه مسلمان په شراب، يا خنزير، يا مرداربانديې خلع اوکړی فَلَا شَيْءَ لِلزَّوْجِ د خاوند لپاره به هيڅ عوض نه وی وَالْفُرْقَةُ بَائِنَةٌ اودا فرقت به بائنه وی

تشريح:- مسئله دا ده.چه که په خلع کي عوض باطل وی .مثلاً مسلمان سرې خپلې ښځې سره په شرابو،يا خنزريا ټوك باندې خلع اوکړی .نود خاوند لپاره په ښځه باندې څه څيزد خلع د بدل په طور واجب نه دی.اوپه ښځه به طلاق بائن واقع کيږی .

وَإِنْ بَطَلَ الْعِوَضُ فِي الطَّلَاقِ اوکه په طلاق کي عوض باطل شو كَانَ رَجْعِيًّا نو طلاق رجعی به وی فَوُقُوعُ الطَّلَاقِ فِي الْوَجْهَيْنِ لِلتَّعْلِيقِ بِالْقَبُولِ نو په دواړو صورتونوکي

تشريح:-اوکه مدخول بها ته ئې په عوض باندې طلاق ورکړلو.اودا طلاق دريم طلاق نه وی .اوپه دې صورت کي عوض باطل وی .نوپه ښځه به طلاق رجعی واقع کيږی .اود خاوند په ښځه باندې څه نه واجبيږی .په دواړوصورتونوکي طلاق واقع کيدل ددې امله دی .چه دښځې طلاق دهغې په قبلولوپورې معلق کړې شوې دې.اوهغې قبول کړلو.نوطلاق واقع شو.

وَافْتِرَاقُهُمَا فِي الْحُكْمِ اود دواړو طلاقونو په حکم کي مختلف کيدل دی . لِأَنَّهُ لَمَّا بَطَلَ الْعِوَضُ ځکه چې کله

عوض باطل شو كَانَ الْعَامِلُ فِي الْأَوَّلِ لَفْظَ الْخُلْعِ وَهُوَ كِنَايَةٌ نو په رومبی صورت کي عمل کونکې لفظ خلع ده.اودا کنایه ده وَفِي الثَّانِي الصَّرِيحُ او په دوهم صورت کي عمل کونکې لفظ صريح دي وَهُوَ يَعْقُبُ الرَّجْعَةَ اود صريح طلاق نه روسته رجعت وی

تشریح:-اود دواړوصورتونو په حکم کي توپیر دي.هغه دا چې په اول صورت کي طلاق بائن واقع کیږی .اوپه دوهم صورت کي طلاق رجعي واقع کیږی .وجه د توپیر دا ده.چه هرکله چې عوض باطل شو.نوپه اوله صورت کي عمل کونکې لفظ د خلع دي.اولفظ دخلع د کنایه د الفاظوځنی دي.اوپه الفاظود کنایه باندې طلاق بائن واقع کیږی .سوا د هغه درې الفاظونه دکوموذکر چې وړاندې تیرشوې دي. اولفظ دخلع په هغه درې الفاظوکي نه دي.نوځکه به طلاق بائن واقع کیږی . اوپه دوهم صورت کي د عوض د باطل کیدو نه روسته د «انت طالق» صریح لفظ عمل کونکې دي.اوپه صریح طلاق سره طلاق رجعي واقع کیږی .

وَأَمَّا لَمْ يَجِبْ لِلزَّوْجِ شَيْءٌ عَلَيْهَا اود خاوند لپاره په ښځه باندې هیڅ واجب نشو لِأَنَّهَا مَا سَمَّتْ مَالًا مُتَقَوِّمًا حَتَّى تَصِيرَ غَارَّةً لَهُ ځکه چې ښځې مال متقوم بیان نکړو.چه دا سړی ته دهوکه ورکونکې اوګرځی وَلِأَنَّهُ لَا وَجْهَ إِلَى إِيجَابِ الْمُسَمَّى لِلْإِسْلَامِ اوځکه چې دمسمی واجبولو هیڅ صورت نشته. د مسلمان کیدلو په وجه وَلَا إِلَى إِيجَابِ غَيْرِهِ لِعَدَمِ الِالْتِزَامِ اود غیرمسمی واجبیدلو په صورت کي د التزام نه کاوه په وجه

حل اللغة* ① غارة: دهوکه ② متقوم: هغه څیزچه د قیمت قابل وی ،قیمتی څیز]

تشریح:-په ښځه دڅه څیزد عدم وجوب وجه دا ده.چه ښځې څه مال متقوم نه دي بیان کړي.چه دا سړی ته دهوکه ورکونکې شمارکړې شی .نوهرکله چې دهوکه ورکونکې نه ده.نوپه دي به څه څیزواجب هم نه وی .

ؕ دوهم دلیل دا دي.چه د عوض د وجوب دوي [دوه] صورتونه دی .یودا چې په ښځه باندې مسمی واجب کړې شی . دوهم دا چې غیرمسمی پرې واجب کړې شی .اودا دواړه صورتونه نامکن دی .اول خوځکه چې مسلمان نه شراب خنزیروغیره حواله کولې شی .اونه شرعاً ده ته ددې د قبض کولواجازت شته.نود مسلمانۍ د امله مسمی نه واجبیږی .او دوهم یعنی غیرمسمی ځکه نه واجبیږی .چه ښځې دا په خپله ذمه قبول کړي نه دي.

بِخِلَافِ مَا إِذَا خَالَعَ عَلَى خَلٍّ بِعَيْنِهِ فَظَهَرَ أَنَّهُ خَمْرٌ په خلاف د هغه صورت چې کله په یو معین چاټۍ شرابو باندې (خاوند) خلع اوکړه.بیا ښکاره شوه.چه دا خوشراب دی

تشریح:-ددې په خلاف که د سرکې په معین منګی باندې ئې خلع اوکړله.نومثلاً ښځې اوونیل.چه ددې سرکې په بدل کي به خلع درکوم.اوبیا معلومه شوه.چه هغه سرکه نه وه بلکه شراب وو.نود ابوحنیفه رحمه الله په نیزپه ښځه باندې د مهرمقدار باندې واجب دي.اودصاحبینو رحمهما الله په نیزددې سرکه مثل واجب دي.لکه څنګه چې د مهرپه اړه کې په باب المهرکې تیرشوی دی .

لِأَنَّهَا سَمَّتْ مَالًا ځکه چې ښځې مال ذکرکړې وو فَصَارَ مَغْرُورًا نو خاوند دهوکه خوړونکې شو

حل اللغة* ① مغرور: دهوکه ورکړې شوې ]

تشریح:-دلیل دا دي.چه ښځې دمال ذکراوکړلو.حالانکه هغه مال نه وو.نوښځه خپل خاوند ته دهوکه ورکونکې شوه.اود عقد په مینځ کې دهوکه ورکول ضمان واجبوی .نوځکه به ښځه د مهرمسمی ضامنه وه.

وَبِخِلَافِ مَا إِذَا كَاتَبَ او په خلاف د هغه صورت چې کله ئې خپل غلام په شراب باندې مکاتب کړو أَوْ أَعْتَقَ عَلَى خَمْرٍ حَيْثُ یا ئې آزاد کړو تَجِبُ قِيمَةُ الْعَبْدِ نود غلام قیمت به واجب وی لِأَنَّ مِلْكَ الْمَوْلَى فِيهِ مُتَقَوِّمٌ ځکه چې د مولا ملك په ده کي متقوم دي وَمَا رَضِيَ بِزَوَالِهِ مَجَّانًا اومالك دا ملك په مفت زائل کاوه باندې راضی شوې نه دي أَمَّا مِلْكُ الْبُضْعِ فِي حَالَةِ الْخُرُوجِ اوپاتې شو ملك د بضع،په حالت خروج کي غَيْرُ مُتَقَوِّمٍ عَلَى مَا نَذْكُرُ نودا



غیرمتقوم دي.لکه چې موږ به ذکر کړو

حل اللغة* ① مجانا: مفت،بې عوضه ]

تشریح:-اود دې په خلاف که مولی خپل غلام د شرابوپه عوض کي مکاتب جوړ کړلو.یا ئې آزاد کړلو.نوپه دې صورت کي به په غلام باندې خپل قیمت واجب وی .دلیل دا دي.چه دمولی ملك په غلام باندې متقوم دي.هم دا وجه ده.که غلام چا غصب کړلو.نوپه غاصب باندې قیمت واجب دي. لنډیز دا چې غلام یو قیمت دار څیزدي.اومولی په مفتوکي دخپل ملکیت په ضائع کولوباندې راضی نه دي.اوغلام د بدل یعنی شرابوپه حواله کولوباندې قادرنه دي.ځکه چې دمسلمان په حق کي شراب غیرمتقوم دی .ددې امله به مبدل یعنی دغلام قیمت واجب وی .اوپاتې شو ملك بضع په حالت د خروج کي نوهغه غیرمتقوم دي.

وَبِخِلَافِ النِّكَاحِ او په خلاف ( په شراب باندې) نکاح کولوکي لِأَنَّ الْبُضْعَ فِي حَالَةِ الدُّخُولِ مُتَقَوِّمٌ ځکه چې په حالت د دخول کي بضع متقوم ده وَالْفِقْهُ أَنَّهُ شَرِيفٌ او راز دادي.چه دښځې بضع یو شریف شی دي فَلَمْ يُشْرَعْ تَمَلُّكُهُ إِلَّا بِعِوَضٍ إِظْهَارًا لِشَرَفِهِ نو ددې مالك جوړیدل مشروع نه دی .مګر په عوض سره.چه ددې شرافت ښکاره وی فَأَمَّا الْإِسْقَاطُ او پاتې شو ملك ساقطول. فَنَفْسُهُ شَرِيفٌ نودا پخپل ذات کي شریف دي فَلَا حَاجَةَ إِلَى إِيجَابِ الْمَالِ بیا د مال واجبولو هیڅ حاجت نشته.

تشریح:-اوپه «بخلاف النكاح» سره په نکاح اوخلع کي توپیر بیانوی .یعنی که په شرابوباندې نکاح اوشوه.نونکاح صحیح اومهرمثل واجب دي.اوکه خلع اوشوه.نوخلع صحیح اوپه ښځه باندې څه واجب نه دی .وجه د توپیر دا ده.چه بضع په حالت د دخول کي متقوم ده.اوپه حالت د خروج کي غیرمتقوم ده. او دا خبره چې بضع په حالت د دخول کي مال متقوم اوپه حالت د خروج کي غیرمتقوم دي ده.دا دي.نوپه دې کي راز دا دي.چه ملك بضع د شرافت اودقدراوعزت څیزدي.نوددې د شرافت اوعزت د امله بغیرعوضه ددې مالك جوړیدل مشروع شوی دی .اوپاتی شوه د بضع نه د خاوند د ملکیت ساقط کول نودا فی نفسه شریف دي.ځکه په دغه وخت کي دمال واجبولو ته څه اړتیا نشته.

## د مهرصالح د خلع صالح دي

قَالَ ابو الحسين قدوری رحمه الله فرمانی وَمَا جَازَ أَنْ يَكُونَ مَهْرًا جَازَ أَنْ يَكُونَ بَدَلًا فِي الْخُلْعِ چې کوم شی مهر کیداې شی .( هغه بالاجماع) د خلع عوض کیداې شی لِأَنَّ مَا يَصْلُحُ عِوَضًا لِلْمُتَقَوِّمِ أَوْلَى أَنْ يَصْلُحَ عِوَضًا لِغَيْرِ الْمُتَقَوِّمِ په دې وجه چې کوم شی د قیمتی بضع عوض کیداې شی .( هغه به ) په درجه اولی سره د غیرقیمتی عوض کیداې شی .

تشریح:- په دې عبارت کي مصنف رحمه الله یوه ضابطه بیانوی .هغه ضابطه دا ده.چه کوم شی په عقد نکاح کي مهر جوړیدې شی .هغه په عقد خلع کي بدل خلع جوړیدې شی .دلیل دا دي.چه دعقد نکاح په وخت کي ملك بضع متقوم دي.اوپه حالت د خلع کي غیرمتقوم دي.نوکوم څیزچه د بضع متقوم عوض جوړیدې شی .هغه د بضع غیر متقوم عوض خامخا جوړیدې شی .

ؕ البته ددې په عکس نشی کیدې.یعنی کوم څیزچه په خلع کي بدل جوړیدې شی .دا ضروری نه ده.چه هغه دې په نکاح کي مهرهم جوړ شی .ځکه چې بعضې شیان (څیزونه ) داسې دی .چه هغه بدل خلع جوړیدې شی خومهرنشی جوړیدې.مثلاً د یودرهم نه واخله ترلسو پورې په خلع کي بدل خلع جوړیدې شی . خو مهرنشی جوړیدې.دغه ډول که اووائی .کوم بچې چې د وزه په نس کي دې.هغه بدل خلع دي.نودا صحیح ده.لیکن که اووائی .چه دا مهردي .. نو دا صحیح نه ده.

## د «خالعنی علی ما فی یدی» خلع کول

فَإِنْ قَالَتْ لَهُ نو که ښځې خپل خاوند ته اووئيل خَالِعْنِي عَلَى مَا فِي يَدِي ماته خلع راکړه. په هغه څيز، څه چې زما په لاس کې دي فَخَالَعَهَا فَلَمْ يَكُنْ فِي يَدِهَا شَيْءٌ بيا خاوند ښځې ته خلع ورکړله. حالانکه د ښځې په لاس کې هيڅ نه وو فَلَا شَيْءَ لَهُ عَلَيْهَا نو په ښځه به هيڅ شی واجب نه وی لِأَنَّهَا لَمْ تَغُرَّهُ بِتَسْمِيَةِ الْمَالِ ځکه چې ښځې خاوند د مال په نوم اخستو سره دهوکه نه ده ورکړې.

**حل اللغة:** ① تغر: د غرور نه دې دهوکه ]

**تشریح:**- صورت د مسئلې ښکاره دې. دليل دا دې. چه د ښځې کلام چې «ما في يدی» کې لفظ د ,,ما،، عام دې. کوم چې مال اوغيرمال ټولوته ګډ دې. نوځکه داسې نه ده. چه ښځې دمال ذکرکړې وی. او خاوند ته ئې دهوکه ورکړې وی. اوهرکله چې دهوکه ورکونکې نه ده. نود څه څيزضامنه به هم نه وی.

## د «خالعني على ما في يدی من مال» حکم

وَإِنْ قَالَتْ او که ښځې اووئيل خَالِعْنِي عَلَى مَا فِي يَدِي مِنْ مَالٍ ما ته خلع راکړه. په هغه مال باندې. کوم چې زما په لاس کې دي فَخَالَعَهَا نو خاوند دې ته خلع ورکړله فَلَمْ يَكُنْ فِي يَدِهَا شَيْءٌ حالانکه دښځې په لاس کې هيڅ نه وو رَدَّتْ عَلَيْهِ مَهْرَهَا نو ښځه دې ده ته خپل مهر واپس کړی لِأَنَّهَا لَمَّا سَمَّتْ مَالًا ځکه چې کله ښځې مال ذکرکړې دې لَمْ يَكُنِ الزَّوْجُ رَاضِيًا بِالزَّوَالِ إِلَّا بِعِوَضٍ نو خاوند دعوض اخستلو نه بغير د ملك نكاح په لرې کاوه راضی نشو وَلَا وَجْهَ إِلَى إِيجَابِ الْمُسَمَّى وَقِيمَتِهِ لِلْجَهَالَةِ اود جهالت په وجه مسمی او ددې قيمت واجبولو هيڅ صورت نشته وَلَا إِلَى قِيمَةِ الْبُضْعِ: أَعْنِي مَهْرَ الْمِثْلِ اونه د بضع قيمت يعنی د مهرمثل واجبولو څه وجه شته لِأَنَّهُ غَيْرُ مُتَقَوِّمٍ حَالَةَ الْخُرُوجِ ځکه چې په حالت خروج کې بضع غيرمتقوم وی «فَتَعَيَّنَ إِيجَابُ مَا قَامَ بِهِ عَلَى الزَّوْجِ دَفْعًا لِلضَّرَرِ عَنْهُ نو ددې واجبول معين شو. په څومره کې چې دا خاوند ته پريوتې دې. د خاوند نه ضرر لرې کاوه دپاره.

**تشریح:**- مسئله دا ده. چه ښځې خاوند ته اووئيل. « خالعني على ما في يدی من مال» نو خاوند ورسره په هغې باندې خلع اوکړله. بيا معلومه شوه. چه دهغې په لاس کې څه هم نه وو. نوپه دې صورت کې په ښځه باندې دمهرمقدارواپس کول واجب دی. دليل دا دې. چه ښځې د مال ذکرکړې دې. نو خاوند بغيرد عوض د ملك نكاح په زائله کولوباندې راضی نه دې.

اودعوض څلورصورتونه دی. ① مسمی ② دهغې قيمت، ③ د بضع قيمت، ④ د مهرهغه مقدارکوم چې ښځې دخپل خاوند نه اخستې دې. اولنی درې احتمالات خوباطل شو. ځکه چې مسمی يعنی «ما في يدی من مال» کې اود مسمی قيمت په دواړو کې هريومجهول دي. اوداسې هم وئيلې شی. چه مسمی مجهول ده. نوددې قيمت به په خامخا مجهول وی. اود بضع قيمت يعنی مهرمثل ددې أمله واجب نه دې. چې په حالت دخروج کې د ملك بضع څه قيمت نه وی. نوهرکله چې درې احتمالات باطل شول. نوڅلورم احتمال يعنی د مهرمقدار واجبول متعين شو. چه د خاوند ضرر لرې کړې شی.

## د «خالعني على ما في يدی من دراهم يا من الدراهم» کې دخلع حکم

وَلَوْ قَالَتْ خَالِعْنِي عَلَى مَا فِي يَدِي مِنْ دَرَاهِمَ أَوْ مِنَ الدَّرَاهِمِ اوکه ښځې اووئيل. ماته خلع راکړه. په هغه دراهمو چې زما په لاس کې دی فَفَعَلَ نو خاوند داسې اوکړل فَلَمْ يَكُنْ فِي يَدِهَا شَيْءٌ. (خو) د ښځې په لاس کې هيڅ نه وو فَعَلَيْهَا ثَلَاثَةُ دَرَاهِمَ نو په ښځه به درې درهمه واجب وی

**تشریح:**- مسئله دا ده. چه ښځې خاوند ته اووئيل. « خالعني على ما في يدی من دراهم يا من الدراهم» او خاوند هم دغه ډول اوکړلو. بيا معلومه شوه. چه دښځې په لاس کې څه نشته. نوپه دې صورت کې په ښځه باندې



درې درهم واجب دی.

لِأَنَّهَا سَمَّتِ الْجَمْعَ ځکه چې ښځې د جمع صيغه ذکرکړې ده وَأَقَلُّهُ ثَلَاثَةٌ او اقل د جمع درې دی وَكَلِمَةُ مِنْ هَاهُنَا لِلصِّلَةِ دُونَ التَّبْعِيضِ اودلته کلمه د ،، من ،، د بيان لپاره ده. د تبعيض لپاره نه ده لِأَنَّ الْكَلَامَ يَخْتَلُّ بِدُونِهِ ځکه چې کلام ددې نه بغير مختل کيږی.

**تشریح:**-دليل دا دې. چه ښځې د دراهم صيغه دجمع استعمال کړله. اواقل دجمع درې دی. اوپه «من دراهم» کې من بيانيه دې. تبعيضيه نه دې. لکه څنګه چې په [فَاجْتَنِبُوا الرِّجْسَ مِنَ الْأَوْثَانِ وَاجْتَنِبُوا قَوْلَ الزُّورِ] کې من دبيان لپاره دې. اود «مـــن» په اړه کې بعضې حضراتويوه قاعده ذکرکړې ده. هغه دا چې په کوم خائې کې د «من» د لفظ نه بغيركلام صحيح کيږی. نوپه هغه خائې کې به «من» د تبعيض لپاره وی. لکه «اخــذت من الدراهم» اوپه هرهغه خائې کې چې د «من» نه بغيركلام صحيح نه وی. نوپه دغه خائې کښې به لفظ د «من» د بيان لپاره وی. دتبعيض لپاره به نه وی. نوجمع په خپل حال باندې پاته پاتې شوه. اوچونکه اقل دجمع درې دی. نودرې دراهم به واجب وی.

## په تختيدلی غلام باندې خلع کول

فَإِنِ اخْتَلَعَتْ عَلَى عَبْدٍ لَهَا آبِقٍ اوکه ښځې ( خپل خاوند سره) په داسې غلام باندې خلع اوکړله. چې تختيدلې دې عَلَى أَنَّهَا بَرِيئَةٌ مِنْ ضَمَانِهِ په دې شرط باندې چې ښځه ددې غلام د ضمانت نه بری ده لَمْ تَبْرَأْ نودا به بری نه وی وَعَلَيْهَا تَسْلِيمُ عَيْنِهِ إِنْ قَدَرَتْ او په ده به بعينه ددې غلام سپارل واجب وی. که قادر وی وَتَسْلِيمُ قِيمَتِهِ إِنْ عَجَزَتْ نو دده قيمت سپارل به واجب وی اوکه عاجز وی

**تشریح:**- صورت د مسئلې دا دې. که ښځې دخپل خاوند سره په تختيدلی غلام باندې خلع اوکړله په دې شرط چې دا ښځه به د غلام د ضمانت نه بری وی. يعنی ښځې دا شرط بيان کړلو. چه د غلام حاصلولو اوحواله کاوه به زما نه مطالبه نشی کولې. که غلام ملاؤ شو. خواوبه ئې سپاری ورته، ګنی څه څيزبه په دې باندې واجب نه وی. نوپه دې صورت کې دا ښځه نه بری کيږی. بلکه که د غلام په حاصلولوقادره شوه. نوهم دهغه غلام سپارل واجب دی. اوکه دهغه غلام په سپارلوقادره نشوه. نود هغه غلام قيمت به ورته سپارل واجب وی

لِأَنَّهُ عَقْدُ الْمُعَاوَضَةِ ځکه چې خلع عقد معاوضه ده فَيَقْتَضِي سَلَامَةَ الْعِوَضِ نود سلامت عوض تقاضا کوی وَاشْتِرَاطُ الْبَرَاءَةِ عَنْهُ شَرْطٌ فَاسِدٌ او ددې نه د بری کاوه شرط لګول. شرط فاسد دې فَيَبْطُلُ إِلَّا أَنَّ الْخُلْعَ لَا يَبْطُلُ بِالشُّرُوطِ الْفَاسِدَةِ نودا به باطليږی. مګر دا چې خلع په شروط فاسده سره نه باطليږی وَعَلَى هَذَا النِّكَاحُ او هم په دې به نکاح قياس کولې شی.

**تشریح:**-دليل دا دې. چه خلع عقد معاوضه دې. نوځکه د سلامت دعوض متقضی دې. نود دې أمله ښځې دارخه د براءت شرط لګول فاسد دې. ځکه چې دا شرط د مقتضی د عقد نه خلاف دې. اوچونکه خلع د شروط فاسدؤ په وجه نه باطليږی. بلکه شرط فاسدباطليږی. نوځکه به دلته شرط باطل شی. اوخلع به پاته وی.

اوهرکله چې شرط براءت باطل اوخلع صحيح وی. نوپه ښځه به عبدمسمی واجب وی. اوکه دا دعبد مسمی په سپارلوقادره نه وی. نودهغې قيمت به واجب وی. اوهم دا تفصيل په نکاح کې هم دې. يعنی که يوکس د يوې ښځې سره نکاح اوکړله. اوتختيدلې غلام ئې مهرمقرر کړلو. او خاوند ددغه غلام د سپارلود شرط نه د براءت شرط هم اولګولو. نودا کس به بری نه وی. بلکه که هم په دغه غلام قادر شو. دهغه حواله کول به واجب وی. اوکه په هغه قادر نشو. نودهغه قيمت ادا کول به واجب وی.

## د «طلقني ثلاثاً بألف» حكم

وَإِذَا قَالَتْ طَلِّقْنِي ثَلَاثًا بِأَلْفٍ اوكه ښځې اوونيل.ماته درې طلاقه د يو زر په بدله كې راكړه فَطَلَّقَهَا وَاحِدَةً نو خاوند دې ته يو طلاق وركړو فَعَلَيْهَا ثُلُثُ الْأَلْفِ نو په ښځې به د يو زر دريمه واجب وي

تشريح:- مسئله دا ده.كه ښځې خاوندته اوونيل.« طلقني ثلاثاً بالف» او خاوند ورته يوطلاق وركړلو.نوپه ښځه باندې يوطلاق بائن واقع كيږي .اوپه ده باندې د زرو روپو دريمه برخه واجب ده.اوامام شافعي رحمه الله هم ددې قائل دي.

لِأَنَّهَا لَمَّا طَلَبَتْ الثَّلَاثَ بِأَلْفٍ ځكه چې كله ښځې د يو زر په بدله كې د درې طلاقو مطالبه اوكړله فَقَدْ طَلَبَتْ كُلَّ وَاحِدَةٍ بِثُلُثِ الْأَلْفِ نو ګويا هر طلاق ئې د يو زر د دريمې برخې په عوض طلب كړو وَهَذَا لِأَنَّ حَرْفَ الْبَاءِ يَصْحَبُ الْأَعْوَاضَ اودا ځكه چې لفظ د ،،ب،، په عوض باندې داخليږي وَالْعِوَضُ يَنْقَسِمُ عَلَى الْمُعَوَّضِ او عوض په معوض باندې منقسم كيږي .

[1]دليل دا دې.چه هركله ښځې د يوزر روپوپه عوض د درې طلاقو مطالبه اوكړله.نودا داسې شوه.چه دې د زرو روپو په دريمه برخه د يوطلاق مطالبه اوكړله.اوددې دليل دا دې.چه كلمه د ،،با،، په عوض باندې داخليږي .نوځكه به «الـف» يعنى زر روپۍ عوض وي .اودرې طلاقه به معوض وي .اوقاعده دا ده.چه عوض په معوض باندې تقسيږي .نويو زر روپۍ به په درې طلاقو تقسميږي .

وَالطَّلَاقُ بَائِنٌ لِوُجُوبِ الْمَالِ او طلاق به بائن وي .دمال واجبيدو په وجه.

تشريح:- اوطلاق بائن به ځكه واقع كيږي .چه دا طلاق على مال دې.اوپه طلاق على مال باندې طلاق بائن واقع كيږي .نوځكه به طلاق بائن واقع كيږي .

## د «طلقني على ألف» حكم

وَإِنْ قَالَتْ اوكه ښځې اوونيل طَلِّقْنِي ثَلَاثًا عَلَى أَلْفٍ ماته په يو زرباندې درې طلاقه راكړه فَطَلَّقَهَا وَاحِدَةً نو خاوند دې ته يو طلاق وركړو فَلَا شَيْءَ عَلَيْهَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ (1) نود ابوحنيفه رحمه الله په نيز به په ښځه باندې هيڅ واجب نه وي .وَيَمْلِكُ الرَّجْعَةَ او خاوند به درجعت مالك وي

تشريح:-صورت د مسئلې دا دې.چه ښځې خاوندته اوونيل.« طلقني ثلاثاً على ألـف» او خاوند ورته يوطلاق وركړلو نودامام ابوحنيفه رحمه الله په نيزيږې يوطلاق رجعي واقع كيږي .اوپه ښځه باندې څه نه واجبيږي .امام احمد رحمه الله هم ددې قائل دي.

وَقَالَا هِيَ وَاحِدَةٌ بَائِنَةٌ بِثُلُثِ الْأَلْفِ او صاحبين رحمهما الله فرمائي .چه يو بائنه به د يوزر د دريمې په بدله كې واقع كيږي لِأَنَّ كَلِمَةَ عَلَى بِمَنْزِلَةِ الْبَاءِ فِي الْمُعَاوَضَاتِ، حَتَّى إِنَّ قَوْلَهُمْ احْمِلْ هَذَا الطَّعَامَ بِدِرْهَمٍ أَوْ عَلَى دِرْهَمٍ سَوَاءٌ ځكه چې كلمه د ،، على ،، په معاوضاتو كې د باء په مرتبه كې ده.تردې چې ددوى قول « احمل هذا الطعام بدرهم اوعلى درهم » دواړه برابر دى

تشريح:- صاحبين رحمهما الله فرمائي .چه د يوزر روپو په دريمه برخه به يوطلاق بائن واقع كيږي . دليل دا دې.چه طلاق على مال دښځې داړخه عقد معاوضه ده.اوپه معاوضاتوكې كلمه د «على» د «بـاء» په مرتبه كې وى .يعنى په عقدمعاوضه كې كوم حكم د باء دكلمه دې.هم هغه حكم د على دكلمه دې.نوچه «طلقني ثلاثـا

---

(1) القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في فتح القدير(٧١|٤) والكفاية (٧٠|٤) وردالمحتار(٦١١|٢) والهندية (٤٩٦|١) نقلاً عن القول الراجح (٣٤٦|١)_



بالف» په صورت كې كه خاوند يوطلاق واقع كړي .نو د زرو روپو په دريمه برخه يوطلاق بائن واقع كيږي .نودغه ډول به د «طلقني ثلاثاً على ألف درهم» كې ديوزر روپو په دريمه كې يوطلاق بائن واقع كيږي .

وَلَهُ أَنَّ كَلِمَةَ عَلَى لِلشَّرْطِ اود امام صاحب رحمه الله دليل دادې.چه كلمه د على د شرط لپاره راځي قَالَ اللَّهُ تَعَالَى الله تعالى فرمائيلي دى {يُبَايِعْنَكَ عَلَى أَنْ لَا يُشْرِكْنَ بِاللَّهِ شَيْئًا} داښځې دې تاسره په دې شرط باندې بيعت اوكړي .چه دوى به د الله تعالى سره هيڅ څوك نه شريكوى وَمَنْ قَالَ لِامْرَأَتِهِ أَنْتِ طَالِقٌ عَلَى أَنْ تَدْخُلِي الدَّارَ اوكوم كس چې خپلې ښځې ته اوونيل.« أنت طالق على أن تدخل الدار» كَانَ شَرْطًا نودا شرط دې وَهَذَا لِأَنَّهُ لِلُّزُومِ حَقِيقَةً اودا ځكه چې كلمه د ،،على ،، حقيتاً د لزوم لپاره ده وَاسْتُعِيرَ لِلشَّرْطِ اود شرط لپاره مستعار اخستې شوې ده لِأَنَّهُ يُلَازِمُ الْجَزَاءَ ځكه چې شرط ملازم د جزاء دې وَإِذَا كَانَ لِلشَّرْطِ او هركله چې (كلمه دعلى)شرط لپاره ده فَالْمَشْرُوطُ لَا يَتَوَزَّعُ عَلَى أَجْزَاءِ الشَّرْطِ روسته مشروط د شرط په اجزاؤ باندې نه تقسيمږي .

حل اللغة: ① يتوزع: تقسيمږي ② استعير: په خواست سره غوستل،عاريه]

تشريح:-دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې.چه په دې مقام كې كلمه د،على ،، دشرط لپاره ده.ځكه چې كله د ،على ،، موضوع ده داستعلاء دپاره،لكه «زيدعلى السطح» اوكه په استعلاء باندې ئې حمل كول متعذر شى .نودالزام په معنى به حمل كولې شى .لكه «عليه دين » اوكه د الزام معنى هم متعذره شى .نود شرط په معنى به حمل كولې شى .ځكه چې د شرط اوجزاء په مينځ كې مناسبت دې.هغه داسې لكه څنګه چې دلازم او ملزوم په مينځ كې لزوم وى .نودغه ډول د شرط او جزاء په مينځ كې هم لزوم دې.لكه چې حرف دعلى په شرط كې حقيقت دې.لكه څنګه چې مصنف رحمه الله فرمائيلي دى .چه «إن كلمة على للشرط» (الكفايه) اوصاحب دعنايه بيان كړې دې.چه كلمه د ،على ،، د شرط په معنى كښې مجاز دې.

[1]حاصل دا چې دلته كلمه دعلى د شرط لپاره ده.كه حقيقت وى اوكه مجاز،لكه دالله تعالى په ارشاد ((يَاأَيُّهَا النَّبِيُّ إِذَا جَاءَكَ الْمُؤْمِنَاتُ يُبَايِعْنَكَ عَلَى أَنْ لَا يُشْرِكْنَ بِاللَّهِ شَيْئًا)) كې عدم اشراك بالله د بيعت شرط دې. اوپه «أنت طالق على أن تدخلي الدار» كې د طلاق د وقوع لپاره دخول د دارشرط دې.

[2]نوپه «على ألف» كې دا ثابته شوه.چه كلمه د «على» د شرط لپاره ده.اومشروط د شرط په اجزاؤ باندې نه تقسيمږي .ځكه چې مشروط موجوديږي په وخت د وجود د شرط كې ،اوشرط نوم د ټولواجزاؤ دې.نود شرط د يوجزء په واقع كيدو به د مشروط يوجزء نه واقع كيږي .ځكه چې شرط نه دې واقع شوې.

بِخِلَافِ الْبَاءِ نو مشروط په اجزاؤ دشرط باندې نه منقسم كيږي .په خلاف د باء. لِأَنَّهُ لِلْعِوَضِ عَلَى مَا مَرَّ ځكه چې دا د عوض لپاره راځي .لكه چې تيرشو نشو وَإِذَا لَمْ يَجِبْ الْمَالُ او هركله چې مال واجب كَانَ مُبْتَدَأً فَوَقَعَ الطَّلَاقُ نودا به طلاق ابتداء وي .نو طلاق به پريوځي وَيَمْلِكُ الرَّجْعَةَ او خاوند به درجعت مالك وي

تشريح:- ددې په خلاف كلمه د ،با،ده.ځكه چې دا دعوض لپاره ده.اوعوض منقسم وى په معوض باندې،

[1]نوهركله چې په مسئله مذكوره كې په «طلقني ثلاثاً على ألف» كې د خاوند په طلاق وركاوه په ښځه څه نه واجبيږي .نودخاونددا طلاق به هغه نه وى .دكوم چې ښځې مطالبه كړې ده.بلكه دا به د خاوند د اړخه ابتداء طلاق وى .اوچونكه خاوند په صريحى لفظ سره طلاق وركړې دې.نودا به طلاق رجعي وى .والله اعلم بالصواب.

## دخاوندد اړخه د «طلقي نفسك ثلاثاً بألف يا على ألف» حكم

وَلَوْ قَالَ الزَّوْجُ او كه خاوند ( خپلې ښځې ته) اوونيل طَلِّقِي نَفْسَكِ ثَلَاثًا بِأَلْفٍ أَوْ عَلَى أَلْفٍ ته خپل نفس ته د يوزر په عوض، يا په زر باندې درې طلاقه وركړه فَطَلَّقَتْ نَفْسَهَا وَاحِدَةً نو ښځې خپل ځان ته يو طلاق وركړو لَمْ يَقَعْ شَيْءٌ

نوهيڅ به نه واقع کيږي .لِأَنَّ الزَّوْجَ مَا رَضِيَ بِالْبَيْنُونَةِ خکه چې خاوند په بائنه کيدو راضي نه وو إِلَّا لِتُسَلِّمَ لَهُ الْأَلْفُ كُلُّهَا مګر په هغه صورت کې راضي دې.چه ده ته پوره يوزر روپۍ حاصلې شي

تشريح:- مسئله دا ده.چه خاوند خپلې ښځې ته اووئيل.﴿ طلقي نفسك ثلاثا بألف يا على ألف﴾ اوښځې خپل ځان ته يوطلاق ورکړلو.نويوطلاق هم نه واقع کيږي .

دليل دا دې.چه خاوند دخپلې ښځې په بائنه کيدو باندې په هغه صورت کې راضي دې.چه ده ته پوره يوزر روپۍ حاصلې شي .نوچه خاوند ديوزر روپوپه عوض د خپل ملك په زائله کولوباندې راضي شي .نوددې نه دا نه معلوميږي . چې ديوزر روپو نه په کم قيمت به هم دخپل ملك په زائله کولوباندې راضي وي .

بِخِلَافِ قَوْلِهَا طَلِّقْنِي ثَلَاثًا بِأَلْفٍ مګردا چې خاوند ته پوره زر درهمه واپس کړي .په خلاف د ښځې د قول ﴿ طلقني ثلاثا بالف﴾ لِأَنَّهَا لَمَّا رَضِيَتْ بِالْبَيْنُونَةِ بِأَلْفٍ خکه چې کله ښځه د يوزر په عوض بائن کيدو باندې راضي شوه كَانَتْ بِبَعْضِهَا أَرْضَى نود يو زر په جزء باندې به په درجه اولى راضي وي

تشريح:- په خلاف د هغه مسئلې چې ښځه خاوند ته اووائي .﴿ طلقني ثلاثا بالف﴾ اوبيا ورته خاوند يوطلاق ورکړي .نود يوزر په دريمه برخه يوطلاق بائن واقع کيږي .خکه چې دا ښځه هرکله په يوزر روپۍ باندې بائنه کيدو باندې راضي شوه.نود دې نه کم يعني په دريمه برخه بائنه کيدو به خامخا راضي وي .

## د خاوند قول ﴿أنت طالق على ألف﴾ قبلولو حکم

وَلَوْ قَالَ اوکه خاوند اووئيل أَنْتِ طَالِقٌ عَلَى أَلْفٍ فَقَبِلَتْ ته په زر باندې طلاقه ئې.نوښځې قبول کړل طَلُقَتْ نو طلاق به واقع وي وَعَلَيْهَا الْأَلْفُ اوپه ده به زر درهمه لازم وي وَهُوَ كَقَوْلِهِ أَنْتِ طَالِقٌ بِأَلْفٍ اودا داسې ده.لکه دده قول ﴿ أنت طالق بالف﴾ وَلَا بُدَّ مِنَ الْقَبُولِ فِي الْوَجْهَيْنِ او په دواړه صورتونوکې د ښځې قبلول ضروري دي لِأَنَّ مَعْنَى قَوْلِهِ بِأَلْفٍ بِعِوَضِ أَلْفٍ يَجِبُ لِي عَلَيْكِ خکه چې دده قول ﴿ بالف﴾ معنى ﴿ بعوض ألف يجب لي عليك﴾ ده.يعني دداسې زر په عوض چې زما په تا باندې واجب دي وَمَعْنَى قَوْلِهِ عَلَى أَلْفٍ عَلَى شَرْطِ أَلْفٍ يَكُونُ لِي عَلَيْكِ او دده د قول﴿ على ألف﴾ معنى ده.د يوزر شرط چې زما په تا باندې لازم دي وَالْعِوَضُ لَا يَجِبُ بِدُونِ قَبُولِهِ اود عوض قبلولو نه بغير نه واجبيږي

تشريح:- صورت د مسئلې دا دې.چه ﴿انت طالق بالف اوانت طالق على ألف﴾ دواړه د ښځې په قبلولو باندې موقوف دي .که په مجلس کې ښځې قبول کړلو.نوطلاق به واقع کيږي .د ﴿بالف﴾ معنى ده.د يوزر روپو په شرط،چه هغه به زما په تاباندې لازم وي .حاصل دا چې په اول صورت ﴿بالف﴾ کې يوزر روپۍ عوض دې.اوپه دوهم صورت ﴿على ألف﴾ کې يو زر روپۍ شرط دې.

وَالْمُعَلَّقُ بِالشَّرْطِ لَا يَنْزِلُ قَبْلَ وُجُودِهِ .او کوم شي چې معلق بشرط وي .هغه د وجود شرط نه وړاندې نه راکوزيږي وَالطَّلَاقُ بَائِنٌ لِمَا قُلْنَا او طلاق بائنه به وي .د هغه دليل په وجه کوم چې موږ وئيلې دې.

تشريح:- اوکوم څيزچه په شرط پورې معلق وي .هغه څيزدشرط د وجوب نه وړاندې نه موجوديږي .نوپه دې صورت کې به د يوزر روپو قبلولونه روسته يوطلاق واقع کيږي .نوځکه په دې صورت کې قبول ضروري دې.

اوپه دې دواړو صورتونوکې به طلاق بائن واقع کيږي .دليل په اول باب کې تيرشوې دې.يعني حديث ﴿الخلع تطلقة بائنة﴾ اوعقلي دليل دا دې.چه ښځه په هغه صورت کې د مال په سپارلوباندې راضي کيږي.چه ددې نفس دې ته حواله کړې شي .اودنفس سپارل په طلاق بائن سره کيږي په طلاق رجعي سره نه کيږي .

## د﴿انت طالق وعليك ألف إلخ﴾ حکم

وَلَوْ قَالَ لِامْرَأَتِهِ أَنْتِ طَالِقٌ وَعَلَيْكِ أَلْفٌ اوکه خاوند خپلې ښځې ته اووئيل.ته مطلقه ئې.او په تاباندې زر درهم



دي فَقَبِلَتْ دې ښځې قبول کړل أَوْ قَالَ لِعَبْدِهِ أَنْتَ حُرٌّ وَعَلَيْكَ أَلْفٌ يا مالك خپل غلام ته اووئيل.ته آزاد ئې.او په تاباندې زردرهم دي فَقَبِلَ نو غلام قبول کړل عَتَقَ الْعَبْدُ نو غلام آزاد شو وَطَلُقَتِ الْمَرْأَةُ او ښځه مطلقه شوه وَلَا شَيْءَ عَلَيْهِمَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله (۱) اود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دې دواړو باندې هيڅ واجب نشو وَكَذَا إِذَا لَمْ يَقْبَلَا اوهم دغه ډول که دواړو قبول نکړل

تشريح:- صورت دمسئلې دا دې.چه خاوند ښځې ته اووئيل.﴿ أنت طالق وعليك ألف﴾ اوښځې قبول کړلو.يا مولى خپل غلام ته اووئيل ﴿انت حروعليك ألف﴾ اوغلام قبول کړلو.نوغلام آزاد شو.اوښځه طلاقه شوه.اودامام ابوحنيفه رحمه الله په نيز په دواړو باندې څه نه واجبيږي .اودا حکم په هغه وخت کې هم دې.چه دواړو قبول نه وي کړي.

وَقَالَا عَلَى كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا الْأَلْفُ إِذَا قَبِلَ .او صاحبين رحمهما الله فرمائي .چه په دواړوکې په هريو باندې يو زر درهمه لازميږي .که دوی قبول کړل وَإِذَا لَمْ يَقْبَلْ اوکله چې قبول نکړي لَا يَقَعُ الطَّلَاقُ نو په ښځه به طلاق نه وي ی وَالْعَتَاقُ اوغلام به آزاد نه وي

تشريح:- اوصاحبين رحمهما الله فرمائي .چه په ښځه اوغلام هريوباندې يوزر روپۍ واجب دي .خوپه دې شرط چې قبول ئې کړې وي .اوکه قبول ئې نه وي کړې.نونه طلاق واقع کيږي اونه آزادي .

لَهُمَا أَنَّ هَذَا الْكَلَامَ يُسْتَعْمَلُ لِلْمُعَاوَضَةِ دصاحبينو رحمهما الله دليل دادې.چه دا کلام د معاوضه لپاره استعماليږي . فَإِنَّ قَوْلَهُمْ احْمِلْ هَذَا الْمَتَاعَ وَلَكَ دِرْهَمٌ بِمَنْزِلَةِ قَوْلِهِمْ بِدِرْهَمٍ خکه چې دده قول ﴿ إحمل هذا المتاع ولك درهم﴾ ددوی قول بدرهم په مرتبه کې دې

حل اللغة: ① المتاع: سامان ② المعاوضة: بدله ،عوض]

تشريح:-اودصاحبينو رحمهما الله دليل دا دې.چه دا کلام يعني ﴿عليك ألف ﴾ د معاوضه لپاره استعماليږي .د﴿احمل هذا المتاع ولك درهم يا إحمل هذا المتاع بدرهم﴾ د دواړو يوه معنى ده.اوخلع هم عقد معاوضه ده.نوځکه به په ﴿عليك ألف﴾ کې به ،واو، د باء په معنى کې وي .لکه چې خاوند خپلې ښځې ته اووائي .چه ﴿انت طالق في طلاق في حال يا يجب لى عليك ألف﴾ يعني ته طلاقه ئې په داسې حال کې چې زما به په تا باندې زر روپۍ واجب وي .اونحويان وائي .چه حال د شرط په حکم کې وي .نود ﴿انت طالق وعليك ألف﴾ معنى دا شوه.چه ﴿انت طالق على شرط ألف﴾ اوچه مال شرط اوګرځوی .نود ښځې قبلول ضروري دی .لکه څنګه چې په وړاندينۍ مسئله کې تيرشوې دی .نوکه ښځه مال قبول کړي .نوطلاق به واقع کيږي .اوپه دې به مال واجب وی .ګني نه به واجبيږي .

وَلَهُ أَنَّهُ جُمْلَةٌ تَامَّةٌ فَلَا تَرْتَبِطُ بِمَا قَبْلَهُ إِلَّا بِدَلَالَةٍ اود امام صاحب رحمه الله دليل دادې.چه ﴿عليك ألف﴾ پوره جمله ده.خپل ماقبل سره مربوط نه ده.مګر په دلالت سره إِذِ الْأَصْلُ فِيهَا الِاسْتِقْلَالُ خکه چې په جمله کې اصل دادی .چه پخپله مستقل وی وَلَا دَلَالَةَ او دلته کې هيڅ دليل موجود نه دې لِأَنَّ الطَّلَاقَ وَالْعَتَاقَ يَنْفَكَّانِ عَنِ الْمَالِ خکه چې طلاق اوعتاق دواړو د مال نه جلا کيږي

حل اللغة: ① الاستقلال: مستقل کيدل ،ځانله کيدل ② ينفكان: تثنيه د ينفك، جلا کيدل]

تشريح:-اودامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې.چه ﴿عليك ألف﴾ مبتداء اوخبر د دوا ړو په ترکيب سره دا جمله

(۱) القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في فتح القدير (۷۲\۴) والكفاية (۷۳\۴) والعناية (۷۳\۴) وردالمحتار(ص،۶۲۱) والدرالمختار(۶۱۲\۲) نقلاً عن القول الراجح (۳۴۷\۱)-

تامه ده.اوجمله تامه د دلیل نه بغیرد ماقبل سره مربوطه نه وی .ځکه چې په جمله تامه کښې اصل دا وی .چه دا به مستقله وی .اودلته د ماقبل سره په مربوط کیدو څه دلیل نشته.ځکه چې په طلاق اوعتاق دواړو کې په مال سره جدا کیږی .بلکه په دې دواړو کې د ښه خلګو عادت دا دې.بلکه په دې دواړو کې د ښه خلګو عادت دا دی.چه هغوی عوض نه قبلوی .

بِخِلَافِ الْبَيْعِ وَالْإِجَارَةِ ځکه چې طلاق او عتاق دواړه دمال نه جلا وی .په خلاف د بیع او اجاره لِأَنَّهُمَا لَا يُوجَدَانِ دُونَهُ ځکه چې دا دواړه د مال نه بغیر نه موجودیږی .

تشریح:- ددې په خلاف په بیع اواجاره کې دا دواړه د مال نه بغیرنه موجودیږی .ځکه چې دا دواړو معاوضه محضه ده.نوثابته شوه.چه د «علیك ألف» د «أنت طالق» سره څه تعلق نشته.

د «أنت طالق علی ألف إلخ» حکم

وَلَوْقَالَ أَنْتِ طَالِقٌ عَلَى أَلْفٍ عَلَى أَنِّي بِالْخِيَارِ أَوْعَلَى أَنَّكِ بِالْخِيَارِ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ اوکه خاوند اووئیل.ته طلاقه ئې.په یو زر درهم باندې.په دې شرط باندې چې ماته درې ورځو پورې خیار دې.یا تاته اختیار دې فَقَبِلَتْ نو ښځې قبول کړل فَالْخِيَارُ بَاطِلٌ نودا خیار باطل دې. إِذَا كَانَ لِلزَّوْجِ چې کله د خاوند لپاره وی وَهُوَجَائِزٌ إِذَا كَانَ لِلْمَرْأَةِ اودا خیارجائز دې.چه کله دښځې لپاره وی فَإِنْ رَدَّتِ الْخِيَارَ فِي الثَّلَاثِ بیا که ښځې په درې ورځو کې دننه خیار ردکړو بَطَلَ نو طلاق باطل شو وَإِنْ لَمْ تَرُدَّ اوکه رد ئې نکړو طَلُقَتْ نو طلاق به واقع وی وَلَزِمَهَا الْأَلْفُ او په ښځه به یو زردرهم لازم وی وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله [1] اودا د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز دی

تشریح:-صورت د مسئلې دا دې.چه خاوند خپلې ښځې تـه اووئیـل.« أنت طالق علی ألف علی أنی بالخیارإلی ثلاثة أیام» یا ئې «أنت طالق علی ألف علی أنك بالخیارثلاثة أیام» اووئیـل.اوښځې دا خبره قبول کړله. نوکه خیارد خاوند لپاره وی .نوباطل دې.اوکه د ښځې لپاره وی .نوجائزدې.بیا که ښځې په درې ورځو کې دننه دا رد کړله.نوطلاق به باطل شی .اوکه ښځې د طلاق اجازت ورکړلو.یا ئې خیاررد نکړلو .ځکه چې تر اوسه پورې د خیارموده تیره شوه.نوپه ښځه به طلاق واقع شی .اویوزر روپۍ به پرې لازم شی . دا ذکرشوې تفصیل دامام ابوحنیفه رحمه الله په نیزدې.

وَقَالَا: الْخِيَارُ بَاطِلٌ فِي الْوَجْهَيْنِ او صاحبین رحمهما الله فرمائی .چه خیار په دواړه صورتونوکې باطل دې وَالطَّلَاقُ وَاقِعٌ او طلاق واقع شو وَعَلَيْهَا أَلْفُ دِرْهَمٍ او په دې باندې زردرهم لازم دی

تشریح:- اوصاحبین رحمهما الله فرمائی .چه خیار په دواړو صورتونوکې باطل دې.که دښځې لپاره وی اوکه د سړی لپاره وی .اوطلاق به واقع کیږی .اوپه ښځه په یوزر روپۍ لازم وی .هم دا د امام شافعی او احمد رحمهما الله مذهب دی.

لِأَنَّ الْخِيَارَ لِلْفَسْخِ بَعْدَ الْاِنْعِقَادِ ځکه چې دخیار منعقد کیدو نه روسته د فسخ لپاره وی لَا لِلْمَنْعِ مِنَ الْاِنْعِقَادِ اود منعقدکیدو نه د منع کاوه لپاره نه وی وَالتَّصَرُّفَانِ لَا يَحْتَمِلَانِ الْفَسْخَ مِنَ الْجَانِبَيْنِ او دواړه تصرف دواړو اړخ ته د فسخ احتمال نه لری لِأَنَّهُ فِي جَانِبِهِ يَمِينٌ ځکه چې خلع د خاوند په اړخ کې قسم دې وَمِنْ جَانِبِهَا شَرْطُهَا اود ښځې په اړخ ددې شرط دې

تشریح:-دصاحبینو رحمهما الله دلیل دا دې.چه خیارد عقد منعقده د فسخ لپاره مشروع شوې دې.ددې لپاره نه دې

---

[1]) القول الراجح هو قول أبی حنیفة رحمه الله كذا فی فتح القدیر (٧٤\١٤) والبحرالرائق (٨٥\١٤) والهندیـة (٤٩٩\١١) والعنایـة (٧٤\١٤) نقلاً عن القول الراجح (٣٤٨\١١)-



چې دمنعقد کیدونه ئې بند کړی .اودلته دانعقاد نه روسته فسخ ممکن نه ده.نوځکه د دواړو طرفونه یعنی د خاوند د اړخه ایجاب اود ښځې داړخه د قبول د فسخ احتمال نشته.د خاوند د اړخه د فسخ احتمال نوځکه نشته.چه خلع د خاوند داړخه قسم وی .ځکه چې خاوند معنی د شرط اوجزاء ذکرکړې ده.اوقسم فسخ نه قبلوی .نوثابته شوه.چه د خاوند داړخه خلع د فسخ احتمال نه لری .اودښځې داړخه د فسخ احتمال ځکه نشته.چه دښځې قبول د یمین لپاره شرط دې.نولکه څنګه چې یمین فسخ نه قبلوی .دغه ډول شرط هم فسخ نه قبلوی .ددلیل لنډیز دا شوه.چه خیارد فسخ لپاره مشروع شوې دې.اوخلع فسخ نه قبلوی .نوځکه به خیارپه دواړو طرفونوکې باطل وی . .

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله أَنَّ الْخُلْعَ فِي جَانِبِهَا بِمَنْزِلَةِ الْبَيْعِ حَتَّى يَصِحَّ رُجُوعُهَا اود امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادې.چه خلع دښځې په اړخ کې د بیع په مرتبه کې ده.تردې چې دښځې رجوع کول صحیح دی وَلَا يَتَوَقَّفُ عَلَى مَا وَرَاءَ الْمَجْلِسِ او په ما وراء د مجلس باندې موقوف نه وی فَيَصِحُّ اشْتِرَاطُ الْخِيَارِ فِيهِ نو په خلع کې دخیارشرط لګول صحیح دی

تشریح:-دامام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دا دې.چه خلع د ښځې د اړخه د بیع پشان ده.ځکه چې ښځې خپل خاوند په عوض سره دمال مالك جوړ کړې دې.هم دا وجه ده.چه د ښځې په خلع کې دخپل قول نه رجوع کول صحیح دی .اوخلع په ما وراء مجلس باندې موقوف نه ده.لکه څنګه چې په بیع کې رجوع کول هم صحیح دی .اوبیع په ماوراء مجلس باندې موقوف نه وی .نوثابته شوه.چه خلع د ښځې په حق کې د بیع په مرتبه کې ده.نولکه څنګه چې په بیع کې د خیار شرط لګول شرعاً صحیح دی .نودغه ډول په خلع کې هم د ښځې داړخه دخیار شرط لګول به صحیح وی .

أَمَّا فِي جَانِبِهِ يَمِينٌ حَتَّى لَا يَصِحَّ رُجُوعُهُ او پاتې شوه( خلع) د خاوند په اړخ کې ،( نو) داقسم دې.تردې چې د خاوند ددې نه رجوع کول نه صحیح کیږی وَيَتَوَقَّفُ عَلَى مَا وَرَاءَ الْمَجْلِسِ او په ماوراء د مجلس باندې موقوف پاتې کیږی وَلَا خِيَارَ فِي الْأَيْمَانِ او په قسم کې خیار نشته

تشریح:- اود خاوند په حق کې خلع قسم دې.هم دا وجه ده.که خاوند دخلع نه روسته رجوع کول غواړی .نونشی کولې.اودده په حق کې خلع په ما وراء مجلس باندې موقوف وی .نوثابته شوه.چه د خاوند په حق کې خلع قسم دې.اوپه قسم کې شرعاً خیار نه وی .نوځکه به په خلع کې د خاوند لپاره خیار نه وی .

وَجَانِبُ الْعَبْدِ فِي الْعَتَاقِ مِثْلُ جَانِبِهَا فِي الطَّلَاقِ اود غلام په اړخ کې په عتاق کې داسې دې.لکه چې دښځې په اړخ کې طلاق

تشریح:-صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی .چه په عتاق کې د غلام حکم هم هغه دې.کوم چې په طلاق کې د ښځې دې.یعنی که مولی خپل غلام ته اووئیل.« أنت حر علی ألف علی أنی بالخیارأو علی أنك بالخیار» اوغلام قبول کړله.نودامام ابوحنیفه رحمه الله په نیزکه خیارد غلام لپاره وی .نوجائزبه وی .اوکه د مولی لپاره وی .نوباطل به وی .اود صاحبینو رحمهما الله په نیزپه دواړو صورتونوکې به باطل وی .

د «طلقتك أمس علی ألف درهم فلم تقبلی» حکم

وَمَنْ قَالَ لِامْرَأَتِهِ طَلَّقْتُكِ أَمْسِ عَلَى أَلْفِ دِرْهَمٍ فَلَمْ تَقْبَلِي وکوم کس چې خپلې ښځې ته اووئیل ما تاته په یوزر درهم باندې پرون طلاق درکړې دې.خو تاقبول نکړو فَقَالَتْ قَبِلْتُ نو ښځې اووئیل. ماقبول کړې دې فَالْقَوْلُ قَوْلُ الزَّوْجِ نود خاوند قول به ( معتبر) وی

تشریح:- په دې عبارت کې دوې [دوه] مسئلې دی .یوه دا چې خاوندخپلې ښځې تـه اووئیل.چه ماپرون تاته د زرو روپو په عوض کې طلاق درکړې وو.خوتا نه وو قبول کړې.اوښځه ورته اووائی .چه ماقبول کړې وو.نوپه

دې صورت کې به د خاوند قول دقسم سره معتبر وي .

**وَمَنْ قَالَ لِغَيْرِهِ** اوکه يو کس بل کس ته اووئيل **بِعْتُ مِنْكَ هٰذَا الْعَبْدَ بِأَلْفِ دِرْهَمٍ أَمْسِ فَلَمْ تَقْبَلْ** ما پرون تا باندې د زر درهمو په عوض دا غلام خرڅ کړې وو.خو تا قبول نکړو **فَقَالَ قَبِلْتُ** نو دې سړي اووئيل.ما قبول کړې دې **فَالْقَوْلُ قَوْلُ الْمُشْتَرِي** نود مشتري قول به ( معتبر) وي

**تشريح:**-دويمه مسئله دا ده.چه يوکس بل ته اووئيل.چه ما پرون تاته خپل غلام په زر روپۍ درکول.خوتا قبول کړې نه وو.اومشتري ورته اووائي .چه ما قبول کړې وو.نوپه دې صورت کې به د مشتري قول قبلولې شي .

**وَوَجْهُ الْفَرْقِ أَنَّ الطَّلَاقَ بِالْمَالِ يَمِينٌ مِنْ جَانِبِهِ** او وجه د توپير داده.چه طلاق بالمال د خاوند په اړخ کې قسم دې **فَالْإِقْرَارُ بِهِ** نود قسم اقرار به دشرط اقرار نه وي **لَا يَكُونُ إِقْرَارًا بِالشَّرْطِ لِصِحَّتِهِ بِدُونِهِ** ځکه چې قسم دشرط نه بغير صحيح کيږي

**تشريح:**-په دواړو مسئلوکې وجه د توپير دا ده.چه طلاق بالمال د خاوند په حق کې قسم دې.ځکه چې خاوند طلاق د ښځې د مال په قبلولو پورې معلق کړې دې.اود معلق کاوه نوم يمين اوقسم دې.اوقسم په قسم خوړونکي باندې پوره کيږي .نود خاوند داړخه د قسم اقرار کول د شرط په وجود يعنی د ښځې داړخه د مال قبلولواقرار نه دې.ځکه چې قسم بغيرد شرط نه صحيح کيږي .نود خاوند دا وئيل.چه تا قبول نه وو کړې.دخپل قول نه رجوع نه ده.نوښځه به په خپل قول باندې ګواه پيش کړي .ګنې د خاوند قول به سره د يمين نه معتبر وي .

**أَمَّا الْبَيْعُ** پاتې شوه بيع، **فَلَا يَتِمُّ إِلَّا بِالْقَبُولِ** نو دا بغير د قبول نه نه تماميږي **وَالْإِقْرَارُ بِهِ إِقْرَارٌ بِمَا لَا يَتِمُّ إِلَّا بِهِ** اود بيع اقرار کول د هغه شي اقرار کول دی .چه ددې نه بغير بيع نه قائميږي **فَإِنْكَارُهُ الْقَبُولَ رُجُوعٌ مِنْهُ** نود مشتري د قبلولو نه انکار د بيع نه رجوع کول دی .

**تشريح:**- اوپاتې شوه مسئله د بيع نوهغه د مشتري د قبول نه بغيرنه تماميږي .نوبائع چې هرکله د عقد بيع د منعقد کاوه اقرار اوکړلو.نودداسې اقرارئې ورسره هم اوکړلو.چه دهغې نه بغيربيع نه تماميږي .يعنی د مشتري قبلول،نود بائع د مشتري د قبول نه انکار کول دخپل اقرار نه واپس کيدل دی .نوځکه به د بائع قول معتبر نه وي .بلکه د مشتري قول به معتبر وي .والله اعلم

## د مبارات حکم

**قَالَ** قدوري رحمه الله فرمائي **وَالْمُبَارَأَةُ كَالْخُلْعِ كِلَاهُمَا يُسْقِطَانِ كُلَّ حَقٍّ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنَ الزَّوْجَيْنِ عَلَى الْآخَرِ مِمَّا يَتَعَلَّقُ بِالنِّكَاحِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله** (۱) چې د ښځې خاوند يو بل برې کول دخلع پشان دی .د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز په هغه حقوق کې کوم چې د نکاح متعلق دی .مبارات او خلع دواړه هريو داسې حق ساقطوي .چه د ښځې خاوند په يو بل باندې دی

**تشريح:**-صورت دمسئلې دا دې.چه په ښځه خاوند کې د يوبل لره برې کول دخلع پشان دی .يعنی په مبارات اوخلع کې هريو داسې دی .چه ښځه او خاوند هريودهغه حق نه برې کوي .کوم چې د نکاح سره متعلق وي .لکه مهراود تيرو شوو ورځو نفقه،البته په خلع اومبارات کې د عدت نفقه اوسکنی نه ساقطيږي .خوکه ښځې د عدت په نفقه باندې خلع اوکړله.نونفقه به ساقطيږي .خوسکنی نه ساقطيږي . ځکه چې سکنی د شريعت حق دې.اودشريعت حق د چا په ساقط کولوسره نه ساقطيږي .دا ذکرشوې تفصيل دامام

(۱) القول الراجح هو قول أبی حنيفة رحمه الله كذا فی فتح القدير(٤\٧٦) ومنحة الخالق( ٤\٨٨) والبحرالرائق ( ٤\٨٨) نقلاً عن القول الراجح (١١\٣٥٠)_



ابوحنيفه رحمه الله مذهب دې.

**وَقَالَ مُحَمَّدٌ رحمه الله لَا يَسْقُطُ فِيهِمَا إِلَّا مَا سَمَّيَاهُ** او اما محمد رحمه الله فرمائي .چه په مبارات او خلع دواړوکې هرحق نکاح نه ساقطوي .علاوه ددې نه چې دواړه ئې بيان کړي **وَأَبُو يُوسُفَ رحمه الله مَعَهُ فِي الْخُلْعِ** او امام ابويوسف رحمه الله په خلع کې د امام محمد رحمه الله سره دې **وَمَعَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله فِي الْمُبَارَأَةِ** او په مبارات کې د ابوحنيفه رحمه الله سره دې

**تشريح:**- اوامام محمد رحمه الله فرمائيلی دی .چه په خلع اومبارات کې به هم هغه حقوق ساقطيږي .کوم چې زوجينو بيان کړي وي .اوچه کوم ئې نه وي بيان کړي.هغه به نه ساقطيږي . اودامام ابويوسف رحمه الله قول په خلع کې دامام محمد رحمه الله دقول پشان دې.اودمبارات په صورت کې د امام أبوحنيفه رحمه الله د قول پشان دې.

اددې اختلاف ثمره به په دې مثال کې ښکاره کيږي .چه دښځې مهر يوزر روپۍ دی .اوبيا ښځې خپل خاوند سره په سل روپۍ باندې خلع اوکړله.نودامام ابوحنيفه رحمه الله په نيزجائزدی .چه ښځه دخپل خاوندنه څه واخلی .ځکه چې خلع په وجه مهرساقط شو.اودصاحبينو رحمهما الله په نيزښځه دخپل خاوند نه د څلور سوه روپو رجوع کولې شي .چه د فرقت قبل الدخول په وجه ښځې ته نصف مهر ملاؤ شي .اوصرف دومره ساقط شي .کوم چې زوجينو بيان کړې وی .يعنی سل درهم،

اوکه ښځې په يوزر روپوباندې قبضه اوکړله.اوبيا دغه ښځې په سلو روپو باندې خلع اوکړله.نودامام ابوحنيفه رحمه الله په نيزد خاوند لپاره د سلو روپو نه سوا بل څه نشته.اودصاحبينو رحمهما الله په نيزبه خاوند دښځې نه د دومره روپو رجوع کوی .چه هغه دمهرنيم مقدارته رسيږي .يعنی څلور سوه درهمه به د ښځې نه نور زياتې واخلی .د ثمره اختلاف نه روسته دلائل اوګورئ.

**لِمُحَمَّدٍ رحمه الله أَنَّ هٰذِهِ مُعَاوَضَةٌ** د امام محمد رحمه الله دليل دادې.چه خلع او مبارات دواړه هريو عقدمعاوضه ده **وَفِي الْمُعَاوَضَاتِ يُعْتَبَرُ الْمَشْرُوطُ لَا غَيْرُهُ** او په معاوضاتوکې صرف د مشروط اعتبار کولې شي

**تشريح:**-دامام محمد رحمه الله دليل دا دې.چه په خلع اومبارات کې هريوعقدمعاوضه دې.اوپه معاوضاتوکې هم هغه څيزمعتبر وی .دکوم چې ذکرشوې وی .نوپه خلع اومبارات کې به صرف هغه حقوق ساقط وی .دکوموچه زوجينوبيان کړې وی .اوچه دکوموذکرئې نه وی کړې.هغه به نه ساقطيږي .

**وَلِأَبِي يُوسُفَ رحمه الله أَنَّ الْمُبَارَأَةَ مُفَاعَلَةٌ مِنَ الْبَرَاءَةِ** اود ابويوسف رحمه الله دليل دا دې.چه مبارات د( باب) مفاعلت براة نه ( ماخوذ دې) **فَتَقْتَضِيهَا مِنَ الْجَانِبَيْنِ** نودا د جانبين نه د برې کيدو تقاضا کوي **وَأَنَّهُ مُطْلَقٌ** اودا برې کيدل مطلق دی **قَيَّدْنَاهُ بِحُقُوقِ النِّكَاحِ لِدَلَالَةِ الْغَرَضِ أَمَّا الْخُلْعُ** دا موږ په حقوق نکاح سره مقيد کړی دی .د غرض دلالت په وجه اما الخلع او پاتې شوه خلع **فَمُقْتَضَاهُ الْإِنْخِلَاعُ** نو ددې مقتضی انخلاع ده چې د خلع معنی ده جلا کول **وَقَدْ حَصَلَ فِي نَقْضِ النِّكَاحِ وَلَا ضَرُورَةَ إِلَى انْقِطَاعِ الْأَحْكَامِ** اودا معنی حاصليږي د نکاح په ماتيدوباندې

**حل اللغة:** ① الانخلاع: جلا کول]

**تشريح:**-اودامام ابويوسف رحمه الله دليل دا دې.چه مبارات دباب مفاعلت نه دې.ماخوذ د براءت نه دې.اومفاعلت د دواړوطرفونو نه د فعل تقاضا کوی .نومبارات به ددې خبرې تقاضا کوی .چه په زوجينوکې هريودبل نه برې شي .

اولفظ د براءت مطلق دې.هرحق ته ګډ دې.که د نکاح وی اوکه دغيرنکاح وی .خوموږ داد نکاح سره مقيد کړلو.او دليل ددې غرض دې.يعنی غرض اومقصد دهغه جګړې ختمول دی .کومه چې دنکاح په وجه پيدا شوې ده.نوځکه به براءت دهغه حقوقوسره متعلق وی .کوم چې په نکاح سره ثابتيږي .اوپاتې شوه خلع نودهغې غرض انخلاء يعنی بيليدل دی .اودا معنی حاصليږي د نکاح په ماتيدوباندې.نود نکاح د احکامونه سوا د نورو احکامود منقطع کيدو څه اړتيا پاتې نشو.

**وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله أَنَّ الْخُلْعَ يُنْبِئُ عَنِ الْفَصْلِ وَمِنْهُ خَلْعُ النَّعْلِ وَخَلْعُ الْعَمَلِ** او هم ددې نه ده﴿ خلع النعل ﴾ ( د پښو نه)

پیزار جلا کول.او،، خلع العمل،، د عمل نه جلا کول وَهُوَمُطْلَقٌ كَالْمُبَارَأَةِ اوددا د مبارات پشان مطلق دي فَيُعْمَلُ بِإِطْلَاقِهِمَا فِي النِّكَاحِ وَأَحْكَامِهِ وَحُقُوقِهِ نو نکاح او ددې احکام اوددې په حقوق کي ددې دواړو په مطلق کیدو باندې به عمل کولې شی.

حل اللغة* ① النعل: پنړئ]

تشریح:- اودامام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دا دې.چه دخلع معنی جلا کیدل اوبیلیدل دی .اوددې نه خلعة النعل ده.یعنی دپښو نه پنړی ویستل اوخلع العمل یعنی د کارکونکی د کار نه جلا کیدل،نومعلومه شوه.چه خلع هم د مبارات پشان مطلق ده.نوپه نکاح اوددې په احکامو اوحقوقو کي به ددې دواړوپه اطلاق باندې عمل کولې شی .یعنی د خلع په وجه به نکاح اودنکاح احکام اودنکاح حقوق واړه ساقطیږی .که زوجینوبیان کړی وی اوکه نه وی.

## د خپلې ماشومې لورخلع بالمال کول

قَالَ وَمَنْ خَلَعَ ابْنَتَهُ وَهِيَ صَغِيرَةٌ بِمَالِهَا اوکوم کس چې د خپلې لور خلع اوکړله.په داسې حال کي چې دا صغیره ده.ددې د مال په عوض. لَمْ يَجُزْ عَلَيْهَا نو( دا خلع) په دې باندې نه جائز کیږی

تشریح:-صورت د مسئلې دا دې.که پلار دخپلې ماشومې لور خلع اوکړله.دهغې دمال په عوض،نودا خلع په دې صغیره باندې جائزنه ده.هم دا دامام شافعی اوامام احمد رحمه الله قول دې.اوامام مالك رحمه الله فرمائی .چه خلع جائزده.

لِأَنَّهُ لَا نَظَرَ لَهَا فِيهِ خکه چې په دې خلع کي صغیره لپاره هیڅ غوره والې نشته إِذِ الْبُضْعُ فِي حَالَةِ الْخُرُوجِ غَيْرُ مُتَقَوِّمٍ به دې وجه چې بضع په حالت خروج کي غیرمتقوم ده وَالْبَدَلُ مُتَقَوِّمٌ اوبدل خلع متقوم دې

حل اللغة* ① نظر:شفقت،خیرخواهی ② متقوم: قابل دقیمت]

تشریح:-د عدم جواز دلیل دا دې.چه د پلار نظربه شفقت اومهربانئ باندې مبنی وی .اوپه دې خلع کي د ماشومې لپاره نظردشفقت اومهربانئ نشته.خکه چې بضع په حالت خروج کي غیرمتقوم وی .اوبدل خلع متقوم دې.نودغیرمتقوم په بدله کي په ماشومې باندې متقوم لازمول څه هوښیارتیا نه ده.اونه شفقت دې.

بِخِلَافِ النِّكَاحِ او بدل متقوم دې.ددې په خلاف نکاح ده لِأَنَّ الْبُضْعَ مُتَقَوِّمٌ عِنْدَ الدُّخُولِ خکه چې بضع د دخول په وخت متقوم ده وَلِهَذَا يُعْتَبَرُ خُلْعُ الْمَرِيضَةِ مِنَ الثُّلُثِ اوهم په دې وجه د بیمارې ( ښځې) خلع ددې په دریمه برخه مال کي معتبر وی

تشریح:-نکاح ددې په خلاف ده.خکه که یوکس خپله صغیره لور په مهرمثل باندې چاته په نکاح ورکړله.نونکاح صحیح ده.خکه چې بضع په حالت د دخول کي متقوم ده.نومتقوم (ملك بضع) په مقابله کي متقوم (مهرمثل) لازمول دشفقت اومهربانئ خلاف دی .ددې توپیر په وجه که یوه ښځې په خپل مرض الوفات کي دخپل خاوند سره د خلع اراده لری .نودا خلع به ددې دمال په دریمه برخه کي معتبر وی .یعنی په خپل مالك کي د بدل خلع لپاره د دریمې برخې مال نه ورکولې شی .خکه چې بضع په حالت دخروج کي غیرمتقوم ده.نوکوم مال چې ددې په مقابله کي لازم شوې وی .هغه به د مریضې دارخه تبرع وی .اودتبرع اووصیت نفاذ د مرې په دریمه برخه مال کي وی .په زیاتی کي نه وی.

وَنِكَاحُ الْمَرِيضِ يُجْزَأُ بِمَهْرِ الْمِثْلِ مِنْ جَمِيعِ الْمَالِ اود بیمارې نکاح په مهرمثل باندې د جمیع مال نه معتبر ده وَإِذَا لَمْ يَجُزْ او هرکله چې خلع جائز نه ده لَا يَسْقُطُ الْمَهْرُ نو مهر به هم ساقط نه وی وَلَا يَسْتَحِقُّ مَالَهَا او خاوند به ددې دمال مستحق نه وی



تشریح:-اوکه یوکس په مرض الموت کي د یوې ښځې په مهرمثل باندې نکاح اوکړی .نودا نکاح به دده دواړه مال نه معتبر وی .یعنی که دده واړه مال دښځې دمهر برابر وو.نوواړه مال به ښځې ته ورکولې شی .خکه چې بضع په حالت د دخول کي متقوم ده.نوپه دې صورت کي متقوم د متقوم په مقابله کي لازم شو.نوخکه په پوره مال ور کاوه کي څه حرج نشته. لنډیز دا چې پلار کومه خلع کړې وی .هغه جائزنه ده.اوهرکله چې دا خلع جائزنه ده.نودصغیره مهربه هم ساقط وی .اوخاوندهم د بدل خلع په طور د صغیره د مال مستحق کیداې شی.

ثُمَّ يَقَعُ الطَّلَاقُ فِي رِوَايَةٍ بیا په یو روایت کي به طلاق واقع کیږی وَفِي رِوَايَةٍ لَا يَقَعُ او په یو روایت کي به نه واقع کیږی وَالْأَوَّلُ أَصَحُّ او ړومبې روایت زیات صحیح دې. لِأَنَّهُ تَعْلِيقٌ بِشَرْطِ قَبُولِهِ خکه چې ( د خاوند طلاق ورکول) د پلار د قبلولو په شرط باندې معلق وو فَيُعْتَبَرُ بِالتَّعْلِيقِ بِسَائِرِ الشُّرُوطِ نو په نورو شرطونو سره په معلق کاوه باندې به قیاس کولې شی.

تشریح:-پاتې شوه دا خبره چې په دې باندې طلاق واقع کیږی که نه،نوپه دې کي دوې [دوه] روایتونه دی .دیوروایت مطابق واقع کیږی .اودبل روایت مطابق نه واقع کیږی .اود دواړو روایتونو منشاامام محمد رحمه الله قول چې «لم یجز» ده.خکه چې په دې کي دا احتمال هم شته.چه دعدم جواز تعلق د طلاق سره وی .اودا هم احتمال شته.چه د عدم جواز تعلق د لزوم مال سره وی .اوصحیح روایت دا دې.چه طلاق واقع کیږی .اوعدم جواز د مال د لزوم سره متعلق دې.

ⓐدلیل دا دې.چه د خاوند دا طلاق ورکول د ښځې دپلار قبلولو سره مشروط وو.نودا به د نورو شروطونو پورې مشروط کولوباندې قیاس کولې شی .مثلاً خاوندخپلې ښځې ته اووئیل.که زید مکان ته داخل شو.نو ته دې طلاقه ئې.نوکله چې هم زید مکان ته داخل شو.طلاق به واقع کیږی .دغه ډول دلته هم خاوند دخپلې ښځې طلاق د هغې دپلار په قبول پورې معلق کړلو.یعنی که پلار ئې قبول کړی .نوما ورته طلاق ورکړې دې.نوچه پلار ئې قبول کړی .طلاق واقع شو.

ⓑاو دوهم روایت وجه دا ده.چه خلع د یمین په معنی کي ده.اوپه یمین کي نیابت نه جاری کیږی .نوکه د صغیره د پلار دارخه خلع منعقد شی .نودا به په طریق د نیابت منعقد کیږی .نودا صحیح نه ده.نوطلاق به هم نه واقع کیږی .خوددې څواب دا دې.چه دپلار د ارخه شرط یمین موجود شوې دې.نفس یمین نه دې موجود شوې.اوشرط د یمین دهرکس دارخه صحیح کیږی .والله اعلم بالصواب.

## دسخر په ذمه وارئ په زر روپئ خلع کول

وَإِنْ خَالَعَهَا اوکه خاوند په زر درهمه باندې خپلې ښځې ته خلع ورکړله عَلَى أَلْفٍ أَنَّهُ ضَامِنٌ په دې شرط چې د ښځې پلار به ( ددې مال) ضامن وی فَالْخُلْعُ وَاقِعٌ نو خلع به واقع کیږی وَالْأَلْفُ عَلَى الْأَبِ او په پلار به زر درهم لازم وی

تشریح:-صورت د مسئلې دا دې.چه خاونددخپلې صغیره ښځې سره په یوزر روپئ په دې شرط باندې خلع اوکړله.چه ددې پلار به ددې یوزر روپوضامن وی .نوخلع اوشوه.اودصغیره په پلار باندې یوزر روپئ لازم دی .اودلته د ضمان معنی ده.په خپل ځان باندې مال لازمول،دصغیره دارخه کفیل کیدل نه دی .خکه چې د خاوند په صغیره باندې د مال وغیره استحقاق نشته.چه دهغې دارخه وکیل شی.

لِأَنَّ اشْتِرَاطَ بَدَلِ الْخُلْعِ عَلَى الْأَجْنَبِيِّ صَحِيحٌ خکه چې په اجنبی باندې د بدل خلع شرط لګول صحیح دی فَعَلَى الْأَبِ أَوْلَى نو په پلار باندې به ( داشرط لګول) په درجه اولی صحیح وی

تشریح:-دذکرشوې مسئلې دلیل دا دې.چه په اجنبی ښځه باندې د بدل خلع شرط لګول صحیح دی .نوپه پلار باندې به د بدل خلع شرط لګول خامخا صحیح وی .صاحب دعنایه وجه د اولویت ذکرکړې دې. اوفرمائی

چه پلارته د ولد صغیرپه مال کي دولایت حق حاصل دي. هم دا وجه ده.چه پلارد ولد صغیر لپاره خرڅول اخستل،اجاره ودیعت کولي شي .حالانکه د اجنبي لپاره دا تصرفات کول جائز نه دی .بیا په خان باندي د بدل خلع شرط لګول هم یوتصرف دي.نواجنبي چي هغه ته دعاموتصرفاتوکي د ولایت حق حاصل نه دي.نوهرکله چي دهغه لپاره په خپل خان باندي بدل خلع لازمول جائزدی .نوپلارچه هغه ته دعامو تصرفاتودولایت حق حاصل دي.هغه ته خو به خامخا په خپل خان باندي د بدل خلع د لازمولواجازت وی.
ⓐدویمه د اولویت وجه داده.چه خلع داسي تصرف دي.چه دنفع اونقصان په مینځ کښي واقع دي.نواجنبي چي دهغه شفقت ناقص دي.د هغه په خپل خان باندي بدل خلع لازمول صحیح دی .نوپلار چي پوره شفقت لری .دهغه خویه په خپل خان باندي بدل خلع لازمول په طریق اولی سره صحیح وی .

| |
|---|
| وَلَا يَسْقُطُ مَهْرُهَا او د ښځي مهر به نه ساقطیږی .لِأَنَّهُ لَمْ يَدْخُلْ تَحْتَ وِلَايَةِ الْأَبِ ځکه چي دا د پلار د ولایت لاندي داخل نه دي. |

تشریح:-صاحب دهدایه رحمه الله فرمائي .چه دصغیره مهرنه ساقطیږی .اګرچه خلع مهرساقط کوی .ځکه چي مهردپلارد ولایت لاندي داخل نه دي.ځکه چي په مهرساقط کولوکي په صغیره باندي څه شفقت نشته .حالانکه د ولایت مبنی په شفقت ده.

## په صغیره باندي د یوزر روپو دخلع شرط لګول

| |
|---|
| وَإِنْ شَرَطَ الْأَلْفَ عَلَيْهَا اوکه خاوند دا زر درهم په صغیره باندي شرط کړی وی تَوَقَّفَ عَلٰى قَبُوْلِهَا إِنْ كَانَتْ مِنْ أَهْلِ الْقَبُوْلِ نو (خلع جائز کیدل) پخپله د صغیره په قبلولو باندي موقوف دی .په دي شرط چي دا د قبلولو لیاقت لری |

تشریح:-صورت د مسئلي دا دي.چه خاوند یوزر روپۍ بدل خلع په خپله صغیره ښځه باندي شرط اولګولو .نوجوازدخلع هم په خپله ددغه صغیره په قبول باندي موقوف دي.خوپه دي شرط چي دغه صغیره د قبلولو صلاحیت لری .یعني عقد پیژني .چه په خلع سره نکاح زائله کیږی .اوخلاصي پری ملاویږی .

| |
|---|
| فَإِنْ قَبِلَتْ نوکه صغیره قبول کړو وَقَعَ الطَّلَاقُ نو طلاق به واقع کیږی لِوُجُوْدِ الشَّرْطِ ځکه چي شرط موجود شوي دي وَلَا يَجِبُ الْمَالُ او مال به واجب نه وی لِأَنَّهَا لَيْسَتْ مِنْ أَهْلِ الْغَرَامَةِ فَإِنْ قَبِلَهُ الْأَبُ عَنْهَا ځکه چي صغیره د تاوان د اهل څني نه ده.بیا که پلار ددي د اړخه د خلع عوض قبول کړو فَفِيْهِ رِوَايَتَانِ نو په دي کي دوي [دوه] روایتونه دی . |
| حل اللغة: ① الغرامة:تاوان ] |

تشریح:-نوکه صغیره قبول اوکړلو.نوطلاق به واقع شي .ځکه چي شرط قبول موجود شو.البته مال نه واجبیږی خکه چي صغیره ددي توان نه لری .چه په دي باندي تاوان وغیره لازم کړي شي .اوکه ددي صغیره په خاني ددي پلارقبول کړلو.نوپه دي قبلولوکي دوي [دوه] روایتونه دی .په یوروایت کي قبلول صحیح دی .اوپه بل روایت کي قبلول صحیح نه دی .د اول روایت وجه دا ده.چه ددي قبلول دصغیره لپاره صرف نفع ده.چه بغیرد مال نه د خاوندنه نجات ملاویږی .نودا داسي ده.لکه د صغیره لپاره هدیه قبلول.اود دوهم روایت وجه دا ده.چه دا قبلول د شرط یمین په معنی کي دي.اوشرط یمین د نیابت احتمال نه لری .

## صغیره سره په مهرباندي خلع کول

| |
|---|
| وَكَذَا إِنْ خَالَعَهَا عَلٰى مَهْرِهَا اوهم دغه ډول که خاوند صغیري سره خلع اوکړله.ددي په مهر باندي وَلَمْ يَضْمَنِ الْأَبُ الْمَهْرَ و پلار دمهر ضامن نشو تَوَقَّفَ عَلٰى قَبُوْلِهَا نود صغیره په قبلولو به موقوف وی |

تشریح:- مسئله دا ده.که خاوند د صغیره سره ددي په مهرباندي خلع اوکړله.اوپلارئي هم ضامن نشو.نوبیا هم



دا خبره ددي صغیره په قبلولوباندي موقوف ده.نوکه صغیره قبول کړلو.طلاق به واقع شي .ځکه چي شرط موجود شو.اوچونکه صغیره د ضمان اهل نه ده.نومهرنه ساقطیږی

| |
|---|
| فَإِنْ قَبِلَتْ طَلُقَتْ نوکه صغیري قبول کړو.نو طلاق به واقع شي وَلَا يَسْقُطُ الْمَهْرُ و مهر به نه ساقطیږی وَإِنْ قَبِلَ الْأَبُ عَنْهَا فَعَلَى الرِّوَايَتَيْنِ او که ددي د اړخه پلارقبول کړو.نو دوي [دوه] روایتونه دی . |

تشریح:-اوکه د صغیره دا اړخه پلار قبول کړلو.نوپه دي کي دوي [دوه] روایتونه دی .دیوروایت مطابق صحیح ده. او د بل روایت مطابق صحیح نه ده.اوددواړو روایتونو وجه وړاندي تیره شوي ده.

## دپلار په ضمانت سره دطلاق واقع کیدل

| |
|---|
| وَإِنْ ضَمِنَ الْأَبُ الْمَهْرَ اوکه د صغیره پلار د مهر ضامن شو وَهُوَ أَلْفُ دِرْهَمٍ اودا زر درهم دی طَلُقَتْ نوښځه به طلاقه وی لِوُجُوْدِ قَبُوْلِهِ ځکه چي د پلار قبلول موجود شو وَهُوَ الشَّرْطُ هم دا شرط وو وَيَلْزَمُهُ خَمْسُمِائَةٍ او په پلار به پنځه سوه درهم لازم وی اسْتِحْسَانًا (او دا) استحسان دي |

تشریح:-صورت دمسئلي دا دي.چه خاوند دخپلي صغیره ښځي سره د مهر په اندازه باندي خلع اوکړله .اودصغیره پلار دمهر ددي مقدار ضامن شو.اوهغه مهریوزر روپۍ وی .نوپه دي صغیره به طلاق واقع کیږی .ځکه چي دپلار قبولول موجود شو.اوداد خلع لپاره شرط دي.
ⓐاودصغیره په پلار باندي استحساناً پنځه سوه روپۍ لازمیږی .دلیل دا دي.چه مسئله دي صورت کي فرض کړي شوي ده.چه صغیره غیرمدخول بها وی .اومهریوزر روپۍ دی .نوخلع منسوب کړي شوه د دي مهر اړخ ته،اوددي مهرهغه دي.کوم چي د ښځي لپاره دنکاح په وجه واجب شوي دي.اودښځي لپاره د طلاق قبل الدخول په صورت کي نیم مهر واجبیږی .نولکه چي خاوند دخپلي ښځي په پنځه سوه روپۍ باندي خلع اوکړله.نوځکه به د صغیره په پلار باندي پنځه سوه روپۍ لازم وی .

| |
|---|
| وَفِي الْقِيَاسِ يَلْزَمُهُ الْأَلْفُ او قیاس (تقاضا) داچه زر درهمه لازم وی وَأَصْلُهُ فِي الْكَبِيْرَةِ او ددي مسئلي اصل د بالغي ښځي په حق کي دي إِذَا اخْتَلَعَتْ قَبْلَ الدُّخُوْلِ عَلٰى أَلْفٍ وَمَهْرُهَا أَلْفٌ چي کله دي د دخول نه وړاندي په یو زر باندي خلع اخستي وی .حالانکه ددي مهر هم زر درهمه دي فَفِي الْقِيَاسِ عَلَيْهَا خَمْسُمِائَةٍ زَائِدَةٌ نوقیاس (تقاضا) دا چي په دي باندي پنځه سوه درهم زیاتی لازم وی . |

تشریح:- اوقیاس تقاضا دا ده.چه په دي باندي زر روپۍ لازم شي .ددي مسئلي اصل په بالغه ښځه کي دي.یعني کله چي بالغه ښځي په یوزر روپۍ باندي خلع اوکړله.حالانکه ددي مهرهم یوزر روپۍ وو.اوښځي تراوسه پوري په مهرباندي قبضه هم نه وی کړي.نوپه دي صورت کي قیاس دا دي.چه په ښځه باندي ددي د خاوند لپاره پنځه سوه درهم واجب شي .ځکه چي د طلاق قبل الدخول په وجه پنځه سوه درهم ددي ښځي د خاوند نه د ذمي نه ساقط شوي.اوښځي د یوزر روپو التزام کړي دي.اود ښځي د ذمه نه نصف یعني پنځه سوه روپۍ ساقط شوي.په طریقه دمقاصد ،ځکه چي د نیم مهر د سقوط نه روسته هم دښځي لپاره په خاوند باندي پنځه سوه روپۍ پاته پاتي کیږی .نود یوزر روپو د پوره کاوه لپاره په ښځه باندي پنځه سوه درهم زیاتی واجب وی .

| |
|---|
| وَفِي الْاِسْتِحْسَانِ لَا شَيْءَ عَلَيْهَا او د استحسان تقاضا داده.چه په دي هیڅ هم واجب نه وی لِأَنَّهُ يُرَادُ بِهِ عَادَةً حَاصِلُ مَا يَلْزَمُهَا ځکه چي په داسي خلع سره په عامه توګه باندي د هغه شي حاصلول مراد وی .کوم چي د ښځي لپاره لازم دي |

تشریح:-اواستحسان دادي.چه په ښځه باندي څه واجب نه دی .ځکه چي د خاوند مقصود دا دي.چه ددي دذمي نه واړه مهرساقط شي .اودا مقصود حاصل شوي دي.ځکه چي په ښځه باندي زیاتی څه نه واجبیږی .والله اعلم بالصواب

# باب الظهار

ژباړه:- (دا) باب دظهار (په بیان کښي) دي .

تشریح:- ظهاردباب مفاعلت نه دي.لغوی معنی ئي د خاوند خپل ښځي ته «انت علی کظهرامی» ونیل دی .اوپه شریعت کي ظهاروانی .دمنکوحه دهغه ښځي سره تشبیه ورکول چي هغه په ده باندي همیشه لپاره حرامه وی .اوظهارشرط دا دي.چه مظاهرعاقل،بالغ اومسلمان وی .اوچه ښځه په «نسائنا» کي وی .یعنی چي منکوحه وی .اودظهار رکن د سړی خپلي ښځي ته «انت علی کظهرامی» یاددي قائم مقام څه لفظ ونیل دی .اوددي سبب نشوز دي.ځکه چي آیت د ظهار دخوله په اړه کي نازل شوي وو.په داسي حال کي چي هغه ناشزه وه.اوددي حکم دا دي.چه وطی اودواعی دوطی حراموی سره د بقاء دنکاح نه،تردي چي کفاره ادا کړي .

په ظهاراوخلع کي مناسبت دا دي.چه په دي دواړوکي هریود نشوزاوسرکشۍ په وجه کیږی . اوخلع ئي په ظهارباندي ځکه مقدم کړله.چه په خلع کي تحریم زیات دي.ځکه چي د خلع په صورت کي نکاح منقطع شی .اوتحریم ثابت شی .اود ظهارپه صورت کي نکاح پاته وی .اوحرمت ثابت شی .

په عهد رسالت کي اوس بن صامت﷜ خپلي ښځي ته د غصه په حالت کي ونیلی وو.چه ته په ما باندي داسي ئي.لکه زما د مور شا چي په ما باندي حرامه ده.ددي نه روسته دواړه پښیمانه شول.حضرت خوله د حال معلومولوتحقیق کاوه لپاره په دربار رسالت کښي حاضره شوه.تردغه وخته پوري دظهارپه اړه کي څه حکم نه وو نازل شوي.نونبی ﷺ د قوم معمول د عمل وړ اوګڼړلو.اوورته ئي اوفرمائیل.اوس ستا اوستاد خاوندپه مینځ کي د جمع کیدو څه صورت پاتي نشو.چه هغي دا واوریدله.چه ژړا ئي پیل کړله.اودخپل خاوند په سرئي ګلي پیل کړلي.اوونې ونیل.یارسول الله ﷺ زما ځواني د خاوند په کورکي تیره شوه.اواوس چي بوډئ شوم.نوده ظهاراوکړلو.اوچه جلا شوم.نوکوربه مي تباه شی .اوواړه واړه ماشومان به مي پریشان اوړی راوړی .ددي نه روسته ئي آسمان اړخ ته سرپورته کړلو.او وې ونیل.اې الله زما بې آسره هم ته وارث ئي.زما فریاد واوره.په دغه وخت کي د سورة مجادله اولنی آیاتونه نازل شول.په کوموکي چي ظهارته طلاق نه وو ونیلي شوي.اوونیلي شوی وو.چه دچا نه پیدا شوي نه وی .هغه څنګه مور جوړیدي شي .او دداسي لغویاتود بندولو لپاره داحکم اوکړي شو.چه ترڅوپوري خاوند کفاره نه وی ادا کړي.ترهغه وخته پوري به ښځي ته نه نزدي کیږی .(بیان القران) .

### د «انت علی کظهرامی» حکم

وَإِذَا قَالَ الرَّجُلُ لِامْرَأَتِهِ أَنْتِ عَلَيَّ كَظَهْرِ أُمِّي او کله چي سړی خپلي ښځي ته «أنت علی کظهر امی» اوونیل فَقَدْ حَرُمَتْ عَلَيْهِ نودا ښځه په ده باندي حرام شوه لَا يَحِلُّ لَهُ وَطْؤُهَا دده لپاره دي سره وطی کول حلال نه دی وَلَا مَسُّهَا وَلَا تَقْبِيلُهَا حَتَّى يُكَفِّرَ عَنْ ظِهَارِهِ او نه دا مس کول (لاس اوړل) او نه ددي مچی کول حلال دی .تردي چي د خپل ظهار کفاره ورکړی لِقَوْلِهِ تَعَالَى ځکه د الله تعالی فرمان دي

حل اللغة: ① مس: یو شی ته لاس وراوړل ② تقبیل: مچی کول ]

تشریح:- مسئله دا ده.که یوکس خپلي ښځي ته اوونیل «انت علی کظهرامی» نوپه ده باندي ښځه حرامه شوه. اوس نه دي ددي سره وطی کولي شی .اونه ورله مس کول او بوسه اخستل حلال دی .تردي چي خاوند دخپل ظهارکفاره ورکړی .

{وَالَّذِينَ يُظَاهِرُونَ مِنْ نِسَائِهِمْ} او کوم خلګ چي خپلو ښځو سره ظهار کوی .تردي پوري فرمائي .أَنْ قَالَ {فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مِنْ قَبْلِ أَنْ يَتَمَاسَّا} چه یو غلام آزاد کړی .دجماع نه وړاندي



تشریح:-دلیل آیت ((وَالَّذِينَ يُظَاهِرُونَ مِنْ نِسَائِهِمْ ثُمَّ يَعُودُونَ لِمَا قَالُوا فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مِنْ قَبْلِ أَنْ يَتَمَاسَّا ذَلِكُمْ تُوعَظُونَ بِهِ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ)) دي.یعنی چي کوم خلګ دخپلو ښیانونه ظهاراوکړی .اوبیا دخپلوکړو تلافی کول غواړی .نوددوی په ذمه یوغلام یا وینځه آزادول دی .وړاندي ددي چي ښځه خاوند په خپل مینځ کي یوځاني شی .په دي باندي تاسوته نصیحت کولي شی .اوالله تعالی ستاسوپه ټولوعملونو پوره خبر دي.(حکیم الامت) په دي آیت کي تصریح کړي شوي ده.که دظهارنه روسته د رجوع کولواراده لري .نواول دي غلام آزاد کړی .یعنی کفاره دي ورکړی .نوبیا به جماع اودهغي متعلقات ورته حلال شي .

وَالظِّهَارُ كَانَ طَلَاقًا فِي الْجَاهِلِيَّةِ او ظهار د جاهلیت په زمانه کي طلاق وو فَقَرَّرَ الشَّرْعُ أَصْلَهُ بیا شریعت ددي اصل برقرار اوساتلو وَنَقَلَ حُكْمَهُ إِلَى تَحْرِيمٍ مُوَقَّتٍ بِالْكَفَّارَةِ غَيْرِ مُزِيلٍ لِلنِّكَاحِ ددي حکم ئي د کفاري وخت پوري تحریم اړخ ته منتقل کړو.په داسي حال کي چي دا نکاح زائل کونکي نه دي وَهَذَا لِأَنَّهُ جِنَايَةٌ اودا په دي وجه دی .چه ظهار جرم دي

تشریح:- صاحب دهدایه﷫ فرمائی .چه په زمانه جاهلیت کي به ظهار طلاق شمارلي شو.یعنی لکه څنګه چي په طلاق سره نکاح زائله کیږی .اوحرمت ثابتیږی .نودغه ډول به په ظهارسره نکاح زائله کیدله.اوحرمت به ثابت کیدلو.نوشریعت د ظهاراصلیت په خپل ځائي پریښولو .خوددي حکم ئي بدل کړلو.نووي فرمائیل.چه په ظهارکولوسره نکاح نه زائله کیږی .البته د کفاره اداکولوپوري دخپلي بی بی سره وطی کول حرام دی .

لِكَوْنِهِ مُنْكَرًا مِنَ الْقَوْلِ وَزُورًا ځکه چي دا قول فحش او دروغ دی . فَيُنَاسِبُ الْمُجَازَاةَ عَلَيْهَا بِالْحُرْمَةِ نو مناسب ده.چه (سړی ته) ددي ونیلو په حرامولوسزا ورکړي شي وَارْتِفَاعُهَا بِالْكَفَّارَةِ او ددي حرمت لري کیدل کفاري سره دی ثُمَّ الْوَطْءُ إِذَا حَرُمَ بیا هرکله چي وطی حرام شوه حَرُمَ بِدَوَاعِيهِ نودا به د خپلو دواعی (لوازماتو) سره حرام وی كَيْ لَا يَقَعَ فِيهِ كَمَا فِي الْإِحْرَامِ دي لپاره چي دا په وطی کي واقع نه شی لکه څنګه چي په حالت د احرام کښي وطی او دواعی د وطی ټول حرام وی

حل اللغة: ① زور:دروغ ② ارتفاع: پورته کول ③ دواعی:اسباب]

تشریح:-اوظهارپه وجه حرمت ددي أمله دي.چه ظهارکول جرم دي.اوجرم ځکه دي.چه نامناسب اودروغ خبره ده.دالله تعالی ارشاد دي. ((وَإِنَّهُمْ لَيَقُولُونَ مُنْكَرًا مِنَ الْقَوْلِ وَزُورًا)) بیشکه دا خلګ نامناسبه او دروغ خبره کوی .نوځکه ګناه خامخا ده (حضرت تهانوی ﷫) نوهرکله چي ظهارکول فحش اودروغ خبره شوه.نود داسي وینا ویونکی لپاره دا سزا پکارده.چه په دي باندي دده ښځه حرامه شی .ترڅوچه ئي کفاره نه وی ورکړي. اودا جرم په کفاره سره لري کیږی .دالله تعالی ارشاد دي.((إِنَّ الْحَسَنَاتِ يُذْهِبْنَ السَّيِّئَاتِ)) اونبی ﷺ فرمائیلی دی . «اتبع الحسنة السیئة تمحها» یعنی د بدئ نه روسته نیکی اوکړه.چه بدی ختمه کړی .نوهرکله چي په کفاره سره جنایت لري شو.نوحرمت هم ختم شو.

اوهرکله چي دظهارپه وجه وطی حرامه شوه.نوهغه واړه شیان (څیزونه) به هم حرامیږی .کوم چي د وطی اسباب وی .مثلاً ښځي ته ګوتي وروړل،ښکلول ئي،چه دا شیان (څیزونه) دي په وطی کولوکي اخته نکړی .لکه څنګه چي په حالت د احرام کښي وطی اودواعی دوطی واړه حرام دی .

بِخِلَافِ الْحَائِضِ وَالصَّائِمِ چي په وطی کي اخته نشی .لکه څنګه چي په احرام کي دی .په خلاف د حائضه او روژه دار لِأَنَّهُ يَكْثُرُ وُجُودُهُمَا ځکه چي ددي دواړو وجود په کثرت سره کیږی فَلَوْ حَرُمَ الدَّوَاعِي يُفْضِي إِلَى الْحَرَجِ نوکه دواعی د وطی حرام شی .نو تکلیف ته به اورسیږی وَلَا كَذَلِكَ الظِّهَارُ وَالْإِحْرَامُ اود ظهار او احرام دا حال نه دي.

تشریح:-ددې په خلاف د حائضه او روژه دارې ښځې سره صرف وطی حرامه ده.دواعی دوطی نه دی حرام دا دې.چه دحیض اوروژې وجود باربارروی .نوکه مچې کول وغیره حرام کړې شی .نودا به مفضی الی الحرج شی .اوظهاراواحرام وقوع کله کله وی .نوځکه د ظهاراواحرام په حالت کې دواعی د وطی هم حرام اوګرځولی شول.اوپه حیض اوروژه کې دواعی د وطی حرام اونه ګرځولی شول.

## دکفاره نه وړاندې د وطی کولوحکم

**فَإِنْ وَطِئَهَا قَبْلَ أَنْ يُكَفِّرَ** بیا که د کفاره ور کاوه نه وړاندې ښځې سره وطی اوکړې **اسْتَغْفَرَ اللَّهَ تَعَالَىٰ** نود الله تعالی نه استغفار اوکړې **وَلَاشَيْءَ عَلَيْهِ غَيْرَ الْكَفَّارَةِ الْأُولَىٰ** او سوا د ړومبي کفارې څخه به په ده بل څه شی واجب نه وی **وَلَا يَعُودُ حَتَّىٰ يُكَفِّرَ** او د وطی اعاده به نه کوی .چه ترکومه پورې کفاره ورنکړې

حل اللغة* ① يعاود: بلدېږی ]

تشریح:- مسئله دا ده.که مظاهردکفاره ورکولونه وړاندې دښځې سره وطی اوکړله.نودا کس دې استغفاروائی ① اوپه ده باندې د لومړنی کفاره نه سوا بله کفاره واجب نه ده.اواوس دې وطی نه کوی .تردې چې کفاره ورکړې .هم دا قول د جمهوروفقهاؤ اوامام مالك امام شافعی اوامام احمد رحمهم الله هم دی

**لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ لِلَّذِي وَاقَعَ فِي ظِهَارِهِ قَبْلَ الْكَفَّارَةِ** ځکه کوم کس چې په ظهارکې دکفاره نه وړاندې وطی کړې وه **اسْتَغْفِرِ اللَّهَ** هغه ته نبی کریم ﷺ دا حکم ورکړې وو.چه د الله تعالی نه استغفار اوکړه **وَلَا تَعُدْ حَتَّىٰ تُكَفِّرَ**(١) اوداسې مه کوه.تردې چې کفاره ورکړې

تشریح:- زموږ دلیل دا روایت دې.﴿ أن سلمة بن صخرالبياضی قال لرسول الله ﷺ ظاهرت من إمرأتی ثم أبصرت خلخا لها فی ليلة قمراء فواقعتها فقال رسول الله ﷺ إستغفر ربك ولاتعد حتی تكفر﴾ یعنی سلمه بن صخربیاضی رضی الله عنه رسول الله ﷺ ته عرض اوکړلو.چه ماد خپلې ښځې نه ظهارکړې وو.بیا مې د سپوږمۍ په شپه کې په هغې باندې پانزیب اولیدلو.نودهغې سره مې جماع اوکړله.نونبی ﷺ ورته اوفرمائیل.دخپل رب نه بخښنه غواړه.اودا حرکت بیا مکوه.تردې چې کفاره ورکړې.

**وَلَوْ كَانَ شَيْءٌ آخَرُ وَاجِبًا** اوکه څه بل څه شی واجبیدلو لبینه علیه السلام نو نبی کریم ﷺ به هغه ضرور بیان کړې وو

تشریح:-ددې حدیث نه معلومه شوه.چه نبی ﷺ د استغفار حکم ورکړلو.که داستغفار نه سوا بل څه حکم واجب وو.نبی ﷺ به ورته دهغې حکم خامخا کولو.دا حدیث ابن عباس رضی الله عنهما په دې الفاظو سره بیان کړې دې.﴿ أن رجلا ظاهرمن إمرأته فوقع عليها قبل أن يكفرفقال له رسول الله ﷺ ما حملك علی هذا قال رأيت خلخا لها فی ضوء القمررواه أصحاب السنن الأربعة﴾ اودابن ماجه الفاظ دا دی .﴿ فضحك رسول الله ﷺ وأمره أن لا يقربها حتی يكفر﴾

**قَالَ** مصنف رحمه الله فرمائی **وَهَٰذَا اللَّفْظُ لَا يَكُونُ إِلَّا ظِهَارًا** چې دا لفظ به صرف ظهار وی **لِأَنَّهُ صَرِيحٌ فِيهِ** ځکه چې دا د ظهار په معنی کې صریح دې **وَلَوْ نَوَىٰ بِهِ الطَّلَاقَ لَا يَصِحُّ** اوکه ده په دې لفظ سره د طلاق نیت اوکړو.نو صحیح نه ده **لِأَنَّهُ مَنْسُوخٌ** ځکه چې دده طلاق کیدل منسوخ دی **فَلَا يَتَمَكَّنُ مِنَ الْإِتْيَانِ بِهِ** نوده ته به د داسې کاوه اختیار نهوی.

---

١) من حدیث ابن عباس رضی الله عنهما أخرجه ابوداود فی الطلاق باب ٧١٢ رقم ٢٢٢٢ والترمذی فی الطلاق باب ١٠ رقم ١١٩٩ والنسائی فی الطلاق باب الظهار رقم ٣٢٣٤ وابن ماجه فی الطلاق باب ٢٦ رقم ٢٠٦٥٥)_



تشریح:-فرمائی .چه دده د قول ﴿أنت علی كظهرأمی﴾ نه ظهارثابتیږی .ځکه چې د ظهارپه معنی کې دا کلام صریحی دې.اوصریح د نیت محتاج نه وی .نوکه دې کس په دې سره د طلاق نیت کړې وی .نوصحیح به نه وی .ځکه چې ددې طلاق د طلاق حیثیت منسوخ شوې دې.نوده ته په دې لفظ سره د طلاق نیت کولواختیارنشته.ځکه چې په دې سره د طلاق نیت اوکړی .نوپه دې کې د موضوع دشریعت بدلول لازمیږی .اوبنده ته ددې اجازت نشته.

## د ﴿أنت علی كبطن أمی یا كفخذیا كفرجها﴾ حکم

**وَإِذَا قَالَ أَنْتِ عَلَيَّ كَبَطْنِ أُمِّي** اوکه وې وئیل. ته په ما باندې زما د مور د خیټې پشان یې **أَوْ كَفَخِذِهَا** یا ددې د لینګئ پشان یې **أَوْ كَفَرْجِهَا** یا ددې د شرمګاه پشان یې **فَهُوَ مُظَاهِرٌ** نودا به صرف ظهار کونکې وی

حل اللغة* ① بطن: نس ② فخذ: ورون ،ورونې]

تشریح:- مسئله که خاوند خپلې ښځې ته اووئیل.﴿ أنت علی كظهرأمی یا كفخذأمی یـا كفـرج أمـی﴾ په دې ټولوصورتونوکې دا کس ظهارکونکې دې.

**لِأَنَّ الظِّهَارَ لَيْسَ إِلَّا تَشْبِيهُ الْمُحَلَّلَةِ بِالْمُحَرَّمَةِ** ځکه ظهار هم دادې.چه محلله ته د محرمه سره تشبیه ورکړې شی **وَهَٰذَا الْمَعْنَىٰ يَتَحَقَّقُ فِي عُضْوٍ لَا يَجُوزُ النَّظَرُ إِلَيْهِ** اودا معنی په داسې اندام کې متحقق کیږی .چه هغې طرف ته کتل جائز نه دی .

تشریح:- .دلیل دا دې.چه ظهاروائی .دخپلې منکوحه دهغه چا سره تشبیه ورکول چې همیشه لپاره وربانډې حرامه وی .اودا معنی په هرهغه اندام کې متحقق کیږی .کوم ته چې کتل حرام وی . او کومو اندامونوته چې کتل جائزوی .لکه لاس،پښې،وېښته،نوکونـه،وغیره،دې سره تشبیه ورکولوسره ظهارنـه کیږی .اوامام شافعی امام مالك اوامام احمد رحمهم الله فرمائیلی دی .که خاوند خپلې ښځې ته اووئیل.﴿ أنت علی كيد أمی یـا كرجل أمی یا كعنق أمی﴾ نودا کس ظهارکونکې دې.اوکه ددې د وېښتو،نوك سره ئې تشبیه ورکړله.نوددې حضراتو په نیزدا هم ظهارنه دې.

## محرمه سره د تشبیه ورکولوحکم

**وَكَذَا إِذَا شَبَّهَهَا بِمَنْ لَا يَحِلُّ لَهُ النَّظَرُ إِلَيْهَا عَلَى التَّأْبِيدِ مِنْ مَحَارِمِهِ مِثْلَ أُخْتِهِ أَوْ عَمَّتِهِ أَوْ أُمِّهِ مِنَ الرَّضَاعَةِ** اوهم دغه ډول ( به ظهار وی ) که ښځې ته پخپلو محارموکې داسې ښځې سره تشبیه ورکړی .چه دې ته ( په شهوت سره) کتل همیشه حرام وی .لکه خپله خور، یا خپله ترور، یا رضاعی مور **لِأَنَّهُنَّ فِي التَّحْرِيمِ الْمُؤَبَّدِ كَالْأُمِّ** ځکه چې دا ښځې د مور پشان دائمی حرام دی .

حل اللغة* ① التابيد: همیشه لپاره ② محارم: جمع د محرم هغه څوك چې نکاح ورسره نه کیږی ]

تشریح:- مسئله دا ده.که خاوند دخپلې ښځې تشبیه په خپلو محرماتوکې داسې ښځې سره ورکړله.چه دده هغې ته په شهوت سره کتل همیشه لپاره حرام وی .لکه خور،ترور،وغیره،نودا کس به ظهارکونکې وی .دلیل دا دې.چه دا ښځې دهمیشه لپاره د محرمیت د امله د مور پشان دی .

## د ﴿رأسك علی كظهرأمی إلخ﴾ حکم

**وَكَذَٰلِكَ إِذَا قَالَ رَأْسُكِ عَلَيَّ كَظَهْرِ أُمِّي** وهم دغه ډول که وې وئیل.چه ستا سر په ما باندې زما د مور د خیټې پشان دې **أَوْ فَرْجُكِ أَوْ وَجْهُكِ أَوْ رَقَبَتُكِ أَوْ نِصْفُكِ أَوْ ثُلُثُكِ أَوْ بَدَنُكِ** یا ستا شرمګاه یا ستا مخ یا ستا سټ یا ستا نصف ( بدن) یا ستا دریمه برخه

حل اللغة* ① فرج:د ښځې شرمګاه ②ظهر:شا ③ وجه: مخ ④ رقبة: څټ]

**تشریح:-** مسئله که خاوند خپلې ښځې ته اووئیل «رأسك علی كظهر أمي یا فرجك علی كظهر أمي یا وجهك علی كظهر أمي یا رقبتك علی كظهر أمي یا نصفك علی كظهر أمي یا ثلثك علی كظهر أمي» نوپه دې ټولوصورتونوکې ظهار ثابتیږي.

**لِأَنَّهُ يُعَبَّرُ بِهَا عَنْ جَمِيعِ الْبَدَنِ** ځکه چې په دې اندامونو سره جمیع بدن تعبیر کولې شی. **وَيَثْبُتُ الْحُكْمُ فِي الشَّائِعِ ثُمَّ يَتَعَدَّى كَمَا بَيَّنَّاهُ فِي الطَّلَاقِ** او په جزء شائع کې حکم ثابتیدلو سره بیا متعدی کیږي. لکه چې موږ په طلاق کې بیان کړی دی.

**حل اللغة:** ① الشائع: خور وور، ناقابل تقسیم]

**تشریح:-** دلیل دا دې چه په دې اندامونوکې په هریواندام سره دواړه بدن نه تعبیرکولې شی. نودښځې ددې اندامونوسره تشبیه ورکول داسې دی. لکه چې دښځې سره تشبیه ورکول، ددې امله دا کس ظهارکونکې دې اوحکم اول په جزء شائع کې ثابتیږي. اوبیا واړه بدن ته سرایت کوی. نودغه ډول به دلته هم حکم اولاً وبالذات د ښځې نصف یا ثلث کې ثابتیږي. اوبیا به واړه بدن ته سرایت کوی.

**ښځې ته د «انت علی مثل أمي یا کأمي» وئیل**

**وَلَوْ قَالَ أَنْتِ عَلَيَّ مِثْلُ أُمِّي أَوْ كَأُمِّي** اوکه خاوند اووئیل چه ته په ما باندې د زما د مور مثل یې یا زما د مور پشان یې **يُرْجَعُ إِلَى نِيَّتِهِ لِيَنْكَشِفَ حُكْمُهُ** نو دده نیت اړخ ته به رجوع کولې شی. چه ددې حکم ښکاره شی **فَإِنْ قَالَ أَرَدْتُ الْكَرَامَةَ** نوکه ده اووئیل چه ما د کرامت اراده کړې ده **فَهُوَ كَمَا قَالَ** نودا داسې ده. لکه چې ده اووئیل

**حل اللغة:** ① ینکشف: ښکاره شی ② الكرامة: عزت]

**تشریح:-** صورت د مسئلې دا دې که یوکس خپلې ښځې ته اووئیل چه «انت علی مثل أمي یا کأمي» نود دې کس ځخه به دده د نیت پوښتنه اوکړې شی. که دده نیت د ظهار وی. یعنی چې څنګه نیت وی. هم هغه شان حکم به ثابت شی. هم دا قول دامام شافعي رحمه الله دې اونیت ددې لپاره معلومولې شی. چه دا کلام دتشبیه د څو صورتونواحتمال لری. نود یو صورت متعین کاوه لپاره دنیت وجود ضروری دې. نوکه دې کس اووئیل چه زما مراد خو دا وو چه ته په عزت اواکرام کې زما په نیز زما د مورپشان یې. نودا به هم داسې وی څنګه چې هغه وئیلې وی. یعنی دده کلام به دده په نیت باندې حمل کولې شی. اوپه دې کس به څه واجب نه وی.

**لِأَنَّ التَّكْرِيمَ بِالتَّشْبِيهِ فَاشٍ فِي الْكَلَامِ** ځکه چې د تشبیه په ذریعه اکرام کول په کلام کې ډیر مروج دی

**حل اللغة:** ① فاش: مروج، ② التكريم: عزت کول]

**تشریح:-** دلیل دا دې چه د تشبیه په ذریعه په کلام کې تعظیم اوتکریم ډیرزیات مروج دې. لکه څنګه چې خلګ بولونې بزرګه اووینې. نوورته وائې تاسو زما د پلار په مرتبه کې یې. ددې کلام نه ددې سړی مراد دا وی. چه زما په زړه کې ستاسو مقام د پلارپشان دې حاصل دا چې دې سړی په خپل کلام کې د محتمل نیت کړې دې ددې امله به دده نیت صحیح وی.

**وَإِنْ قَالَ أَرَدْتُ الظِّهَارَ فَهُوَ ظِهَارٌ** اوکه ده اووئیل چه ما د ظهار اراده کړې ده. نودا ظهار دې **لِأَنَّهُ تَشْبِيهٌ بِجَمِيعِهَا** ځکه چې دا د مور په پوره بدن سره تشبیه ده **وَفِيهِ تَشْبِيهٌ بِالْعُضْوِ لَكِنَّهُ لَيْسَ بِصَرِيحٍ** اوپه دې کې اندام سره تشبیه هم موجود ده. خودا صریح نه ده **فَيَفْتَقِرُ إِلَى النِّيَّةِ** ځکه به نیت اړخ ته محتاج وی

**تشریح:-** اوکه ده اووئیل چه ما په دې کلام سره د ظهار اراده کړې وه نودده دا کلام به هم ظهاروی. دلیل دا دې. چې دې کس په خپل دې «انت علی مثل امي» سره دخپلې ښځې د خپلې ټولې مور سره تشبیه ورکړله.



نو هرکله چې دمور دیواندام سره په تشبیه ورکولوباندې ظهارثابتیږي. د واړه بدن په تشبیه ورکولوسره خو به په خامخا ظهار ثابتیږي. اوچونکه په «انت علی مثل أمي» کې په اندام سره تشبیه ورکول موجود دی خوصریح نه دی. نوځکه به نیت ته محتاج وی.

**وَإِنْ قَالَ أَرَدْتُ الطَّلَاقَ** اوکه ده اووئیل چه ما د طلاق اراده کړې ده **فَهُوَ طَلَاقٌ بَائِنٌ** نودا طلاق بائن دې **لِأَنَّهُ تَشْبِيهٌ بِالْأُمِّ فِي الْحُرْمَةِ فَكَأَنَّهُ قَالَ أَنْتِ عَلَيَّ حَرَامٌ** ځکه چې دا په حرمت کې مورسره تشبیه ده. لکه چې ده «انت علی حرام» اووئیل. **وَنَوَى الطَّلَاقَ** اود طلاق نیت یې اوکړو

**تشریح:-** اوکه خاونداووئیل. چه ما په دې کلام سره د طلاق اراده کړې وه. نوطلاق بائن به واقع کیږي. دلیل دا دې. چې دا کلام یعنی «انت علی مثل أمي» په حرمت کې د مور سره تشبیه ورکول دی. لکه چې خاوند خپلې ښځې ته «انت علی حرام» اووئیل. اود طلاق نیت یې کړې وی. اووړاندې تیرشوی دی. چه «انت علی حرام» د کنایه د الفاظوځنی دی. اوپه لفظ د کنایه سره طلاق بائن واقع کیږي. خوپه دې شرط چې نیت یې کړې وی. ددې امله به په دې صورت کې که د طلاق نیت یې کړې وی. نوطلاق بائن واقع کیږي.

**وَإِنْ لَمْ تَكُنْ لَهُ نِيَّةٌ** اوکه دده هیڅ نیت نه وی **فَلَيْسَ بِشَيْءٍ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ** رحمهما الله (1) نود ابوحنیفه او ابویوسف رحمهما الله په نیز دا کلام هیڅ نه دې **لِاحْتِمَالِ الْحَمْلِ عَلَى الْكَرَامَةِ** ځکه چې په کرامت باندې د محمول کاوه احتمال دې

**تشریح:-** اوکه دې کس د څه نیت نه وی کړې. نود شیخینو رحمهما الله په نیزدا کلام لغو دې. امام شافعي رحمه الله هم ددې قائل دې. دلیل دا دې. چه دا کلام مجمل دې. اومتکلم خپل مراد نه دې بیان کړې. نوځکه ددې مصداق نشی متعین کولې. ځکه که دا کلام د طلاق اوظهاراحتمال لری. نوپه دې کې د کرامت احتمال هم موجود دې. (چه ته زما په نیزلکه د مور معززه یې)

**وَقَالَ مُحَمَّدٌ** رحمه الله **يَكُونُ ظِهَارًا** او امام محمد رحمه الله فرمائی. چه (دابه) ظهار وی **لِأَنَّ التَّشْبِيهَ بِعُضْوٍ مِنْهَا لَمَّا كَانَ ظِهَارًا** ځکه (ښځې ته) هرکله د مور یو اندام سره تشبیه ورکول ظهار جوړیږي **فَالتَّشْبِيهُ بِجَمِيعِهَا أَوْلَى** نود مور پوره اندام سره تشبیه ورکول به په درجه اولی ظهار وی

**تشریح:-** اوامام احمد رحمه الله فرمائیلی دی. چه د نیت د نشتوالی په صورت کې به دا کلام ظهاروی. اوامام شافعي امام مالك اوامام احمد رحمه الله ددې قائلین دی. دلیل دا دې. چه هرکله د مورد یواندام سره تشبیه ورکولوباندې ظهار ثابتیږي. نود واړه بدن په تشبیه ورکولوسره خوبه ظهارپه طریق اولی ثابتیږي.

**وَإِنْ عَنَى بِهِ التَّحْرِيمَ لَا غَيْرُ** اوکه ده په دې کلام سره صرف حرامول مراد اخستې دی. **فَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ** رحمه الله **هُوَ إِيلَاءٌ لِيَكُونَ الثَّابِتُ بِهِ أَدْنَى الْحُرْمَتَيْنِ** نود ابویوسف رحمه الله په نیز دا ایلاء ده. چه په دې کلام سره دوې [دوه] حرمتونو کې ادنی حرمت ثابت شی **وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ** رحمه الله **ظِهَارٌ** (2) اود امام محمد رحمه الله په نیز ظهار دې **لِأَنَّ كَافَ التَّشْبِيهِ تَخْتَصُّ بِهِ** ځکه چې کاف د تشبیه د ظهار په معنی کې مخصوص دې.

**حل اللغة:** ① التحریم: حرامول]

---

(1) القول الراجح هو قول الشیخین رحمهما الله كذا فی فتح القدیر (٩١\٤) والخانیة (٢٦٤\٢) والدرالمختار (٦٢٦\٢) والهندیة (٥٠٧\١) نقلاً عن القول الراجح (٣٥١\١)_

(2) القول الراجح هو قول محمد رحمه الله كذا فی الخانیة (٢٦٤\٢) وردالمحتار (٦٢٧\٢) والبحرالرائق (٩٩\٤) نقلاً عن القول الراجح (٣٥٢\١)_

تشریح:- اوکه دې کس په ﴿انت علی مثل امي﴾ سره تحریم اراده کړې وو.یعنی دښځې نې په خپل ځان باندې د حراموالی اراده کړې وه.نودامام ابویوسف رحمه الله په نیزبه به ایلا وی .اودامام محمد رحمه الله په نیزبه ظهار وی .
دامام ابویوسف رحمه الله دلیل دا دې.چه دڅو وجوه له کبله دحرمت ظهارپه مقابله کې حرمت ایلاء ادنی ده.

① حرمت ایلاء بالفعل نه ثابتیږی .بلکه د څلورو میاشتوتیریدونه روسته ثابتیږی .اوپه ظهارکې حرمت بالفعل ثابتیږی .② په موده دایلاء کې دوطی په ذریعه حرمت ایلاء لرې کول ممکن دی .اوظهارددې خلاف دې.ځکه چې په دې کې د کفاره ورکولونه وړاندې وطی کول ناجائزدی .③ ظهارمنکرمن القول اوزوریعنی فحش اودروغ دی .اوایلاء مباح اوجائزده.④ دایلاء کفاره درې روژې دی .اود ظهارکفاره دوې [دوه] میاشتې روژې دی .یاد ایلاء کفاره لسو مسکینانوته ډوډئ ورکول دی .اود ظهارکفاره شپیتو مسکینانوته ډوډئ ورکول دی .(عینی شرح هدایه)⑤ دایلاء حرمت لغیرها دې.یعنی دالله تعالی دنوم د بې حرمتئ د امله پیدا کیږی .اودظهارحرمت لعینها دې.ځکه چې ظهار منکر من القول او دروغ دی .(عنایه)
حاصل داچه د ایلاء حرمت ادنی او اخف دې.په مقابله د حرمت ظهار،اوقاعده دا ده.چه کله په یوکلام کې دوې [دوه] حرمتونه جمع شی .نودغه کلام به د ادنی درجې په حرمت باندې حمل کولې شی .نوځکه به په ﴿انت علی مثل امي﴾ کې دتحریم اراده کاوه په صورت کې په حرمت ایلاء باندې محمول کولې شی .په حرمت ظهاربه نشی محمول کولې.

اودامام محمد رحمه الله دلیل دا دې.چه په ﴿انت علی مثل امي اوکـامي﴾ کې حرف تشبیه موجود دې. اوحرف تشبیه اوکـاف دظهار سره مخصوص دې.نوځکه به دا کلام په ظهارباندې حمل کولې شی .والله اعلم بالصواب.

## د ﴿انت علی حرام کامي﴾ حکم

**وَلَوْقَالَ أَنْتِ عَلَيَّ حَرَامٌ كَأُمِّي** وکه خاوند اوونیل.ته په ما باندې حرامه نې.لکه زما مور **وَنَوَى ظِهَارًا أَوْطَلَاقًا** اود ظهار یا طلاق نیت نې اوکړو **فَهُوَعَلَى مَانَوَى** نودا به دده د نیت موافق وی **لِأَنَّهُ يَحْتَمِلُ الْوَجْهَيْنِ** ځکه چې دا کلام د دواړو احتمال لری .**الظِّهَارُ لِمَكَانِ التَّشْبِيهِ** د ظهار په دې وجه چې تشبیه موجود ده **وَالطَّلَاقُ لِمَكَانِ التَّحْرِيمِ** اود طلاق په دې وجه چې حرام کړې نې ده.**وَالتَّشْبِيهُ تَأْكِيدٌ لَهُ** او تشبیه ددې حراموالو تاکید دې **وَإِنْ لَمْ تَكُنْ لَهُ نِيَّةٌ** او که دده هیڅ نیت نه وی **فَعَلَى قَوْلِ أَبِي يُوسُفَ** رحمه الله **إِيلَاءٌ** نود ابویوسف رحمه الله په قول باندې ایلاء ده.**وَعَلَى قَوْلِ مُحَمَّدٍ** رحمه الله **ظِهَارٌ** (۱) اود امام محمد رحمه الله په قول باندې ظهار دې **وَالْوَجْهَانِ بَيَّنَّاهُمَا** او دواړه وجهې مونږ بیان کړې.

تشریح:- مسئله دا ده. خاوند خپلې ښځې ته اوونیل. ﴿انت علی حرام کامي﴾ اوظهاریا طلاق نیت نې کړې وی .نودده کلام به دده د نیت موافق وی .یعنی که دظهارنیت نې کړې وی .نوظهاربه وی .اوکه د طلاق نیت نې کړې وی .نوطلاق به وی .
دلیل دا دې.چه دا کلام د ظهاراوطلاق دواړو احتمال لری .دظهاراحتمال خو ځکه لری .چه په دې کې حرف تشبیه دې.اوحرف تشبیه دظهار لپاره وی .اودطلاق احتمال ځکه لری .چه دده دا ښځه په خپل ځان حرام کړله.اوپه دې صورت کې به تشبیه هم ددې حرمت تاکید وی .
اوکه دې کس په خپل دې کلام باندې د څه نیت نه وی کړې.نودامام ابویوسف رحمه الله په نیزبه دده دا کلام ایلاء وی .اودامام محمد رحمه الله په نیز به ظهاروی .د دواړه حضراتو دلیل په وړاندینۍ مسئله کې تیرشوې دې.

(۱) القول الراجح هو قول محمد رحمه الله كذا فى البناية (۳۳۱\۵) والخانية (۲۶۴\۲) وردالمحتار(۶۲۷\۲) والبحر الرائق (۹۹\۴) نقلاً عن [illegible] القول الراجح (۳۵۲\۱)-



## د ﴿انت علی حرام کظهرامي﴾ حکم

**وَإِنْ قَالَ أَنْتِ عَلَيَّ حَرَامٌ كَظَهْرِ أُمِّي** وکه خاوند اوونیل.چه ته په ما حرام نې.لکه زما د مور نس **وَنَوَى بِهِ طَلَاقًا أَوْإِيلَاءً** او په دې سره دده د طلاق یا ایلاء نیت اوکړو **لَمْ يَكُنْ إِلَّا ظِهَارًا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ** رحمه الله (۱) نود امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز به دا سوا د ظهار نه بل څه نه وی

تشریح:- صورت د مسئلې دا دې.① چه یوکس خپلې ښځې ته اوونیل.﴿انت علی کظهرامي﴾ اوده په خپل دې کلام سره د ظهار اراده کړې وی .یا نې د ایلاء اراده کړې وی .نودامام ابوحنیفه رحمه الله په نیزدا کلام صرف د ظهار لپاره دې.اوامام احمد رحمه الله هم ددې قائل دې.

**وَقَالَا: هُوَعَلَى مَانَوَى** و صاحبین رحمهما الله فرمائی .چه څه دده نیت وی . هغه به وی .**لِأَنَّ التَّحْرِيمَ يَحْتَمِلُ كُلَّ ذَلِكَ عَلَى مَابَيَّنَّا** ځکه چې حرامول، د هر یوې خبرې احتمال لری .لکه چې مونږ دابیان کړل

تشریح:- اودصاحبینو رحمهما الله په نیزبه دا کلام هم دهغه څه لپاره وی .دکوم لپاره چې ده نیت کړې وی .که د ظهارنیت نې کړې وی .نوظهاربه وی .که د طلاق نیت نې کړې وی .نوطلاق به وی .اوکه د ایلاء نیت نې کړې وی .نوایلاء به وی .
دصاحبینو رحمهما الله دلیل دا دې.چه په دې کلام کې د ذکرشوو صورتونونه د هریواحتمال شته.اود کوم څیزاحتمال چې وی .دهغې نیت صحیح وی .نوځکه به حکم دده د نیت مطابق وی .

**غَيْرَ أَنَّ عِنْدَ مُحَمَّدٍ** رحمه الله **إِذَانَوَى الطَّلَاقَ لَا يَكُونُ ظِهَارًا** مګر داچه دامام محمد رحمه الله په نیزچه کله دده د طلاق نیت اوکړو.نو ظهار به نه وی **وَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ** رحمه الله **يَكُونَانِ جَمِيعًا** اود ابویوسف رحمه الله په نیز به دا طلاق اوظهار دواړه وی **وَقَدْ عُرِفَ مَوْضِعُهُ** اودا پخپله موقع باندې ذکر دی

تشریح:- خوبیا د صاحبینو رحمهما الله په اقوالوکې هم توپیر دې.دامام محمد رحمه الله په نیزکه دې کس په خپل دې کلام سره طلاق نیت کړې وی .نوصرف طلاق به واقع کیږی .ظهارنه ② اودامام ابویوسف رحمه الله په نیزدا کلام د طلاق او ظهاردواړو لپاره کیداې شی .
دامام محمد رحمه الله دلیل دا دې.چه هرکله خاوند په خپل کلام ﴿انـت علـی کظهرامـي﴾ سره د طلاق نیت اوکړلو.نوپه دې باندې طلاق بائن واقع شو.ددې نه روسته په ﴿کظهرامـي﴾ سره ظهارنه واقع کیږی .ځکه چې د بینونت نه روسته ظهارصحیح نه وی .
دامام ابویوسف رحمه الله دلیل دا دې.چه په ﴿انـت طـالق﴾ سره طلاق واقع کیږی .اوددې نه روسته ﴿کظهرامي﴾ په ظهارکې صریح دی .نودا کس به ظهارکونکې هم شمارلې شی .اوچه کلام دخپل ظاهرنه اړوی .په دې کې به دده تصدیق نشی کولې.

**وَلِأَبِي حَنِيفَةَ** رحمه الله **أَنَّهُ صَرِيحٌ فِي الظِّهَارِ** اود ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادې.چه دا کلام د ظهار په معنی کې صریح دې **فَلَا يَحْتَمِلُ غَيْرَهُ** نو ددې نه د علاوه احتمال نشی کیداې **ثُمَّ هُوَمُحْكَمٌ** بیا دا محکم دې **فَيُرَدُّ التَّحْرِيمُ إِلَيْهِ** نودا حرامول به د ظهار حرمت اړخ ته ګرځولې شی .

حل اللغة: ① صریح: ښکاره ]

(۱) القول الراجح هو قول أبى حنيفة رحمه الله كذا فى فتح القدير(۹۲\۴) والخانية (۲۶۴\۲) والكفاية (۹۲\۴) والعناية (۹۲\۴) والدرالمختار(۶۲۷\۲) والهندية (۵۰۷\۱) نقلاً عن القول الراجح (۳۵۴\۱)-

تشریح:- دامام ابوحنيفة رحمه الله دلیل دا دي.چه لفظ د «كظهر امي» په ظهاركي صريح دي.هم دا وجه ده.چه په ظهارباندې دلالت كولوكي دا لفظ دنيت محتاج نه دي.نوپه دې لفظ كي د ظهارنه سوا د طلاق اوايلاء احتمال نشته.اوبيا لفظ د «كظهرامي» په دې وجه چې د بل څه احتمال په كي نشته.دظهارپه معنى كي محكم دي.او «انت على حرام» د څو معانيواحتمال لري .اوقاعده ده.چه محتمل به محكم اړخ ته اړولې شي .ددې امله به «انت على حرام» هم ظهار اړخ ته اړولې شي .

## ظهارصرف د ښځې نه كيږي

قَالَ امام محمد رحمه الله (په جامع صغيركي) فرمائي وَلَا يَكُونُ الظِّهَارُ إِلَّا مِنَ الزَّوْجَةِ، حَتَّى لَوْ ظَاهَرَ مِنْ أَمَتِهِ ظهار (د هيڅ ښځې سره) نه كيږي .بغير د بي بي نه.ترديې كه خپلې وينځې سره ئې ظهار اوكړو لَمْ يَكُنْ مُظَاهِرًا نو ظهاركونكې به نه وي لِقَوْلِهِ تَعَالَى مِنْ نِسَائِهِمْ څكه الله تعالى فرمائيلي دی((وَالَّذِينَ يُظَاهِرُونَ مِنْ نِسَائِهِمْ))

تشریح:- امام محمد رحمه الله په جامع صغيركي فرمائيلي دي .چه ظهارصرف د ښځې نه كيږي .ددې نه سوا د نوروښځونه نه كيږي .ترديې كه يوكس دخپلې وينځې نه ظهاراوكړلو.نودا كس ظهاركونكې نه دي.
① دليل دادې.چه الله تعالى لفظ د «نسائهم» ذكركړي دي.او «نسائهم» د خپلوښځو لپاره استعماليږي . د مملوكه وينځې لپاره نه استعماليږي .نوپه دې سره به ظهارهم صحيح نه وي .دلته دې دا خبره ياده وي. چې د «نساء» تفسيرپه زوجاتواو بيبانوسره د آيت مقصدته د كتلوپه وجه كړې شوې دې.ګنی «نساء» د «امراة» من غيرلفظه جمع ده.كوم چې خپلې ښځې اوپردئ ټولو ته ګډ دي.(عيني شرح هدايه

وَلِأَنَّ الْحِلَّ فِي الْأَمَةِ تَابِعٌ او څكه چې وينځه كې حلت تابع دي.. فَلَا تُلْحَقُ بِالْمَنْكُوحَةِ نودا منكوحې سره نشي لاحق كيدلې وَلِأَنَّ الظِّهَارَ مَنْقُولٌ عَنِ الطَّلَاقِ وَلَا طَلَاقَ فِي الْمَمْلُوكَةِ او څكه چې ظهار منقول دي.طلاق نه اود مملوكې په اړه كي طلاق نشته.

تشریح:- دوهم دليل دا دي.چه دوينځې حلت ددې د مملوكيت تابع دي.نودا به دمنكوحه سره نشي لاحق كولې.② دريم دا چې ظهارپه زمانه دجاهليت كي طلاق وو.نوبيا دا د ظهارموجوده حكم يعنى وختي تحريم بالكفاره اړخ ته راواړولې شو.نوچاته چې طلاق وركولې شي .دهغې نه ظهارهم كولې شي .اود مملوكه وينځې لپاره ظهارنشته.نوځكه ددې نه ظهارهم نشي كيدې.

## ښځې سره دهغې دحكم نه بغيرنكاح كول اوبيا ظهاركول

فَإِنْ تَزَوَّجَ امْرَأَةً بِغَيْرِ أَمْرِهَا نوكه يوې ښځې سره ئې نكاح اوكړله.ددې ښځې د اجازت نه بغير سرې دې ښځې سره ظهار اوكړو ثُمَّ ظَاهَرَ مِنْهَا بيا دې ثُمَّ أَجَازَتِ النِّكَاحَ بيا دې ښځې ددې نكاح اجازت وركړو فَالظِّهَارُ بَاطِلٌ نو ظهار باطل دې

تشریح:-صورت د مسئلې دا دي.چه يوكس د يوې ښځې سره دهغې داجازت نه بغيرنكاح اوكړله. يعنى فضولی (پردی سړی) ورسره ددې نكاح اوكړله.اوبيا ده ددغه ښځې نه ظهاراوكړلو.ددې نه روسته هغه ښځې د نكاح اجازت وركړلو .نودا ظهارباطل دي.

لِأَنَّهُ صَادِقٌ فِي التَّشْبِيهِ وَقْتَ التَّصَرُّفِ څكه چې دا سړې د تصرف په وخت په تشبيه كي رشتونې دي. فَلَمْ يَكُنْ مُنْكَرًا مِنَ الْقَوْلِ نودا سړې فحش او دروغ خبره ويونكې نشو

تشریح:-دليل دا دي.چه دا كس د ظهارپه وخت كي په تشبيه وركولوكي رښتينې وو.څكه چې دا ښځه د اجازت وركولونه وړاندې حرامه وه.نود ظهارركن يعنى د محلله د محرمه ابديه سره تشبيه وركول موجود



نشو.نوځكه دا كس «منكرا من القول وزورا» يعنى فحش اودروغ ويونكې نشو.اوظهارنوم دې د «منكرا من القول وزورا» نوهركله چې دظهارركن موجود نشو.نودا كس ظهاركونكې هم نشو.

وَالظِّهَارُ لَيْسَ بِحَقٍّ مِنْ حُقُوقِهِ حَتَّى يَتَوَقَّفَ، بِخِلَافِ إِعْتَاقِ الْمُشْتَرِي مِنَ الْغَاصِبِ او ظهار د خاوند په حقوق كي څه حق هم نه دي.ترديې چې موقوف پاتې شي .په خلاف د غاصب نه د اخستونكی آزادول لِأَنَّهُ مِنْ حُقُوقِ الْمِلْكِ څكه چې آزادول د ملك د حقوق څنې دی .

تشریح:- په «والظهارليس بحق» سره ديوسوال ځواب دي.سوال دا دي.چه ظهارموقوف دي.په نكاح باندې اونكاح موقوف ده د ښځې په اجازت باندې،ددې امله مناسب ده.چه ظهاردښځې په اجازت باندې موقوف وی .نوچه ښځې د نكاح اجازت وركړی .پكارده چې ظهارصحيح شي .
لكه چې يوكس دغاصب نه غلام واخستلو.اوهغه ئې آزاد كړلو.نودا آزادول به په دې باندې موقوف وی .چه مغصوب منه يعنى مالك ددې بيع اجازت وركړی .كومه چې دغاصب اومشتری په مينځ كي شوې وی .نولكه څنګه چې د غاصب نه د اخستونكی آزادول د مغصوب منه په اجازت باندې موقوف دی .نودغه دول ظهارد ښځې د نكاح اجازت وركولوباندې موقوف كيدل پكار دی .
ځواب دا دي.چه ظهارد نكاح د لوازماتوڅنې نه دي.ددې امله دښځې په اجازت باندې دنكاح د موقوف كيدو نه دا نه لازميږي .چه ظهاربه هم د ښځې په اجازت باندې موقوف وي .اوددې دليل دا دي.چه نكاح يوامرمشروع دي.اوظهارامرغيرمشروع دي.څكه چې «منكراً من القول و زوراً» دي.اوامر غيرمشروع د امرمشروع د حقوقوڅنې نشی كيدې.
په خلاف دهغه كس آزادول چې د غاصب نه ئې غلام اخستې وی .څكه چې آزادول د ملك د حقوقو څنې دي.څكه چې آزادول دملك مكمل كول او متمم كونكي دي.نوچه دا توپير موجود وی .ظهاربه په مشتری من الغاصب باندې څنګه قياس كړې شي !

## ښځوته د «انت على كظهرامي» حكم

وَمَنْ قَالَ لِنِسَائِهِ أَنْتُنَّ عَلَيَّ كَظَهْرِ أُمِّي اوكوم كس چې خپلوښځو ته اووئيل.تاسو په ما باندې زما د مور د شا په شان يئ. كَانَ مُظَاهِرًا مِنْهُنَّ جَمِيعًا نودا (سړې) به ددې ټولو سره ظهار كونكې شي لِأَنَّهُ أَضَافَ الظِّهَارَ إِلَيْهِنَّ څكه چې ده دوی اړخ ته ظهار منسوب كړې دي فَصَارَ كَمَا إِذَا أَضَافَ الطَّلَاقَ نو داسې شوه.لكه چې كله ده (دوی اړخ ته) طلاق منسو ب كړې وی

تشریح:-صورت د مسئلې دا دي.چه يوكس خپلوګنړوښځو ته اووئيل «انتن على كظهرامي» نودا كس په اتفاق سره د ټولو نه ظهاركونكې دي.
دليل دا دي.چه دې كس خپلوټولوښځوته ظهارمنسوب كړلو.نودټولونه به ظهار ثابتيږی .لكه څنګه چې ټولوښځو ته طلاق منسوب كړی .اواووائی .«انتن طوالق» نوپه ټولوباندې طلاق واقع كيږی .

وَعَلَيْهِ لِكُلِّ وَاحِدَةٍ كَفَّارَةٌ او په دې كس به د هريو لپاره كفاره واجب وی .لِأَنَّ الْحُرْمَةَ تَثْبُتُ فِي حَقِّ كُلِّ وَاحِدَةٍ څكه چې حرمت دهر يو په حق كي ثابت شوې دي وَالْكَفَّارَةُ لِإِنْهَاءِ الْحُرْمَةِ او كفاره د حرمت ختمولو لپاره وی

تشریح:- نوزموږ په نيز اودامام شافعی رحمه الله نيزپه دظهادتعدد د امله به كفاره هم متعدد وی .نوچه په دې ښځوكي كمې يوې سره د وطې كاوه اراده كوي .نودهغې په وجه به په خاوند باندې يوه كفاره لازميږی

فَتَتَعَدَّدُ بِتَعَدُّدِهَا نود حرمت په متعدد كيدلو سره به كفاره متعدد وی بِخِلَافِ الْإِيلَاءِ مِنْهُنَّ .په خلاف ددوی سره د ايلاء كولو ،لِأَنَّ الْكَفَّارَةَ فِيهِ لِصِيَانَةِ حُرْمَةِ الِاسْمِ څكه چې كفاره په ايلاء كي د الله تعالى د نوم د تعظيم او حرمت د ساتنه لپاره ده وَلَمْ يَتَعَدَّدْ ذِكْرُ الِاسْمِ او حال داچه د الله تعالى دنوم ذكر متعدد نه دې شوې.

تشریح:- دلیل دا دي چي دظهارپه وجه دهري يوي ښځي په حق کي حرمت ثابت شو.او کفاره ددي لپاره وي چه حرمت ختم کړي .نوچه څومره حرمتونه وي .هم دهغي په اندازه به کفاره واجبيږي .اوپاتي شوه ايلاء نوپه دي کي دالله تعالى د نوم د بې حرمتۍ په وجه کفاره واجبيږي .اوچونکه دټولو ښځونه د ايلاء په کولوکي دالله تعالى ګنړ مونونه ذکرشوي نه وي .نوځکه به صرف يوه کفاره لازميږي :متعدد به نه واجبيږي .

## فصل في الكفارة

ژباړه:- (دا) فصل (په بيان دي) کفاره (کښي) دي .

تشریح:- وړاندي مصنف رحمه الله د ظهاردحکم يعني حرمت وطی اودواعی وطی بيان اوکړلو.نوپه دي فصل کي به دهغه څيزبيان کوی .په کوم چي دا حرمت ختميږي .يعني کفاره،دعالمانو رحمهم الله په دي اړه کي اختلاف دي.چه دکفاره سبب څه دي.نودجمهورومشائخو رحمهم الله په نيزدظهارد کفاره سبب ظهاراووطی اړخ ته رجوع کول دی .ځکه چي د قرآن پاك آيت ((وَالَّذِيْنَ يُظٰهِرُوْنَ مِنْ نِّسَآئِهِمْ ثُمَّ يَعُوْدُوْنَ لِمَا قَالُوْا فَتَحْرِيْرُ رَقَبَةٍ مِّنْ قَبْلِ اَنْ يَّتَمَآسَّا)) کي الله تعالى دکفاره سبب بيان کړي دي.اوواپس کيدل (وطی کولو اړخ ته رجوع کول) ئې په ظهارباندي عطف کړی دی .او د،فاء، په ذريعه ئې په دي باندي حکم مرتب کړي دي.اوقاعده ده.که د معطوف عليه اومعطوف نه روسته څه څيزذکرشی .نودا حکم به دواړو اړخ ته منسوب وی .نومعلومه شوه.چه ظهاراوواپس کيدل د دواړو مجموعه د ظهارسبب دي.اوپه عينی شرح هدايه کي ذکردی .چه ددي کفاره سبب عود يعني وطی کولوته رجوع کول دی .والله اعلم بالصواب.

### دظهارکفاره

قَالَ وَكَفَّارَةُ الظِّهَارِ عِتْقُ رَقَبَةٍ او کفاره د ظهار د يو غلام آزادول دی فَإِنْ لَّمْ يَجِدْ بيا که غلام بيا نه مومی فَصِيَامُ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ نو دوي (دوه) مياشتي دي بلا ناغه روژي اونيسی فَإِنْ لَّمْ يَسْتَطِعْ بيا که دا توان نه وی فَإِطْعَامُ سِتِّيْنَ مِسْكِيْنًا نو شپيتو مسکينانو ته دي خوراك ورکړی

حل اللغة: ① متتابعين: بلا ناغه ]

تشریح:- ابو الحسين قدوری رحمه الله د ظهاردکفاره ترتيب بيانوی .اوفرمائی .چه يوغلام دي آزاد کړی .که ددي قدرت ئې نه وی .نوشپيته روژي دي اونيسی .اوکه ددي قدرت ئې هم نه وی .نوشپيتو مسکينانوته دي خوراك ورکړی .

لِلنَّصِّ الْوَارِدِ فِيْهِ .د هغه په نص په وجه کوم چي د ظهار د کفاري په باب کي وراد شوي دي فَإِنَّهُ يُفِيْدُ الْكَفَّارَةَ عَلٰى هٰذَا التَّرْتِيْبِ ځکه چي دا نص هم په دي ترتيب سره د کفاري افاده ورکوی .

ⓐدليل قرآنی نص دي.((فَتَحْرِيْرُ رَقَبَةٍ مِّنْ قَبْلِ اَنْ يَّتَمَآسَّا ذٰلِكُمْ تُوْعَظُوْنَ بِهٖ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ فَمَنْ لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ مِنْ قَبْلِ اَنْ يَّتَمَآسَّا فَمَنْ لَّمْ يَسْتَطِعْ فَإِطْعَامُ سِتِّيْنَ مِسْكِيْنًا ذٰلِكَ لِتُؤْمِنُوْا بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ)) ژباړه ديوغلام يا وينځي آزادول دی .وړاندي د دي نه چي دواړه (ښځه خاوند) يوبل سره ملاؤ شی .په دي باندي تاسوته نصيحت کولي شی .الله تعالى ته ستاسود ټولواعمالوپوره خبردي.نوبيا چي څوك (غلام يا وينځه) نه مومی .نودده په ذمه بلا ناغه (لګاتار) دوي (دوه) مياشتي روژي نيول دی .وړاندي د دي نه چي دواړه ښځه او خاوند خپلوکي ملاؤ شی .نود چا نه چي دا هم نه کيږي .نودده په ذمه شپيتو مسکينانوته خوراك ورکول دی .دا حکم ددي لپاره (بيان کړي شو)چه په الله اودهغه په رسول باندي ايمان راوړئ.(مرشدتهانوی ) دا نص مفيد د ترتيب دي.ځکه چي الله تعالى د فاء دکلمي سره بيان کړي دي.اوفاء د ترتيب لپاره راځی .دتخيير لپاره نه راځی .

### دظهارد کفاره ادا کولو وخت



قَالَ وَكُلُّ ذٰلِكَ قَبْلَ الْمَسِيْسِ او هريو امر ددي سره د وطی کاوه نه وړاندي دي وَهٰذَا فِي الْإِعْتَاقِ وَالصَّوْمِ ظَاهِرٌ لِلتَّنْصِيْصِ عَلَيْهِ اود وطی نه وړاندي کيدل په آزادولو او روژه نيولوکي ښکاره دي ځکه چي په دي باندي صريح نص دي وَكَذَا فِي الْإِطْعَامِ اوهم دا حکم په خوراك ور کاوه کي دي لِأَنَّ الْكَفَّارَةَ فِيْهِ مُنْهِيَةٌ لِلْحُرْمَةِ ځکه چي په ظهارکي کفاره ورکول حرمت ختمونکي دي فَلَا بُدَّ مِنْ تَقْدِيْمِهَا عَلَى الْوَطْءِ لِيَكُوْنَ الْوَطْءُ حَلَالًا نو ددي په وطی باندي مقدم کول ضروری دی .چه وطی حلال واقع شی .

حل اللغة: ① تقديم: وړاندي کول ② مسيس: مس کول،ګوتي وراوړل ]

تشریح:- فرمائی .چه دظهار کفاره ادا کول که په اعتاق وی .اوکه په صيام وی .اوکه په اطعام وی .هريود وطی ادا کولونه وړاندي ادا کول ضروری دی .ځکه چي په اعتاق او صيام کي خوصراحة نص (من قبل ان يتماسا) موجوددي.اوپاتي شو اطعام نوددي هم قبل الوطی کيدل ضروری دی .ځکه چي کفاره ظهارحرمت ختمونکي ده.نوځکه ضروری ده.چه کفاره په وطی باندي مقدم وی .چه وطی حلاله شی .

### د غلام آزادولو تفصيل

قَالَ وَتُجْزِيْ فِي الْعِتْقِ الرَّقَبَةُ الْكَافِرَةُ وَالْمُسْلِمَةُ وَالذَّكَرُ وَالْأُنْثٰى وَالصَّغِيْرُ وَالْكَبِيْرُ او په آزادولوکي کافی ده، د رقبه آزادول( که) کافر وی .او که مسلمان وی .نر وی اوکه ماده وی .او نابالغ وی . اوکه بالغ

تشریح:- ابو الحسين قدوری رحمه الله فرمائی .چه په کفاره ظهارکي مطلقاً رقبه آزادول کافی دی .که کافروی اوکه مسلمان،که نروی اوکه ښځه که نابالغ وی اوکه بالغ،

لِأَنَّ اسْمَ الرَّقَبَةِ يَنْطَلِقُ عَلٰى هٰؤُلَاءِ ځکه چي د رقبه لفظ په دي ټولو باندي وئيلي شی إِذْ هِيَ عِبَارَةٌ عَنِ الذَّاتِ الْمَرْقُوْقِ الْمَمْلُوْكِ مِنْ كُلِّ وَجْهٍ ځکه چي رقبه نوم دي.د هغه ذات چي من کل وجه مرقوق او مملوك وی

تشریح:- دليل دادي.چه د رقبه اطلاق په دي ټولوباندي کيږي .په څه صفت باندي مقيد نه دي.ځکه چي رقبه وائی .هغه ذات ته چي مملوك وی .اومن کل وجه مرقوق وی

مصنف دهدايه رحمه الله د رقبه معنی بيانوی .اوفرمائی .چه ﴿عن الذات المرقوق المملوك﴾ دي.حالانکه د نحوی ترکيب په اعتبارسره پکار دا وو.چه داسي وي.﴿عن الذات المرقوقة المملوكة﴾ ځکه ذات مؤنث دي.نوددي صفت هم مؤنث پکار وو.

ⓐځواب لفظ د ذات په دوو معانيوکي استعماليږی .① نفس② څيز،دابوسعيدنه روايت دي.چه ﴿كل شیٔ ذات وكل ذات شیٔ﴾ اولفظ د څيزد مصدريت په وجه د مذکراومؤنث دواړو لپاره استعماليږی . نو دلته ذات په معنی د څيزشو.اوددي امله ددي صفت مذکرذکرشوي دي.

ⓑپه عبارت کي د ﴿من كل وجه﴾ تعلق د مرقوق سره دي.دمملوك سره نه دي.ځکه چي په رقيت کي کمال شرط دي په ملك کي نه دي.

وَالشَّافِعِيُّ رحمه الله يُخَالِفُنَا فِي الْكَافِرَةِ او امام شافعی رحمه الله د رقبه کافره په صورت کي زموږ مخالفت کوی وَيَقُوْلُ : الْكَفَّارَةُ حَقُّ اللّٰهِ تَعَالٰى او وائی .چه کفاره ورکول د الله تعالى حق دي فَلَا يَجُوْزُ صَرْفُهُ إِلٰى عَدُوِّ اللّٰهِ كَالزَّكَاةِ نودا د الله تعالى د دښمن په اړخ صرف کول ناجائز دی .لکه ( کافر ته)زکاة ورکول ( ناجائز) دی

تشریح:- امام شافعی رحمه الله فرمائی .چه په کفاره کي د رقبه کافره آزادول جائزنه دی .اوهم دا قول دامام مالك اوامام احمد رحمه الله دی. دليل دا دي.چه کفاره دالله تعالى حق دي.نودا د الله تعالى د دشمن په خلاصولوکي نشی صرف کولي.لکه څنګه چي ورته زکاة نشی ورکولي.

وَنَحْنُ نَقُوْلُ : الْمَنْصُوْصُ عَلَيْهِ إِعْتَاقُ الرَّقَبَةِ اوموږ وايو.چه په کوم شی باندي نص وارد دي. هغه يو رقبه آزادول دی وَقَدْ تَحَقَّقَ اوهغه ( دکافر په آزادولو) متحقق شو

تشریح:- زمونږ دلیل دا دی چه په قرآن پاك کي مطلقاً د رقبه ازادولو حکم ورکړې شوي دې او کافره په آزادولوسره د مطلق رقبه آزادول متحقق کیږی .ددې امله مونږ وایو چه په کفاره ظهارکي د رقبه کافره آزادول هم کافي دی .

وَقَصْدُهُ مِنَ الْإِعْتَاقِ التَّمَكُّنُ مِنَ الطَّاعَةِ اود کفاره ورکونکی قصد په آزادولو سره صرف د الله ﷻ په طاعت باندې قدرت ورکول دی ثُمَّ مُقَارَنَةُ الْمَعْصِيَةِ يُحَالُ بِهِ إِلَى سُوءِ اخْتِيَارِهِ بیا معصیت سره ملاویدل د دې رقبه کافره بده لار اختیارولو باندې محمول کولې شی .

حل اللغة: ① التمکن: قدرت ② المعصیة: گناه ③ مقارنة: مولښتی ]

تشریح:- په دې عبارت سره دامام شافعی رحمه الله د دلیل چې کفاره دالله تعالی حق دی دهغې ځواب دی. دځواب حاصل دا دی چه دکفاره ورکونکی مقصد درقبه کافره په آزادولوکي دا دی چه دې دمولی د خدمت نه نجات حاصل کړی .اودالله تعالی په طاعت باندې قادرشی .اوباتې شو د آزادیدو نه روسته هم دده په خپل کفرباندې پاته پاتې کیدل نودا ده د سوء اعتقاد اوګمراهۍ نښانه ده.

## هغه غلام چې آزادول ئې کافي نه وي

وَلَا تُجْزِئُ الْعَمْيَاءُ او ( داسې رقبه آزادول) کافی نه دی .چه ړوند وی وَلَا الْمَقْطُوعَةُ الْيَدَيْنِ أَوِ الرِّجْلَيْنِ یا ( دده دواړه لاسونه یا دواړه پښې (خپې) کټ شوی وی لِأَنَّ الْفَائِتَ جِنْسُ الْمَنْفَعَةِ وَهُوَ الْبَصَرُ أَوِ الْبَطْشُ أَوِ الْمَشْيُ ځکه ( چې په دې رقبه کي ) د منفعت جنس فوت دې.اوهغه نظر دې. یا نیول دی .یا ګرځیدل دی وَهُوَ الْمَانِعُ اوهم دا ( دکفاره اداکاوه نه ) مانع دې

حل اللغة: ① العمیاء: ړنده ② البطش: چور کول ③ المشي: تګ کول ]

تشریح:- په کفاره د ظهارکښې نابینا یا وینځه آزادول جائز نه دی .اونه دهغه آزادول صحیح دی .چه د دواړه لاسونه ئې کټ شوی وی .یا ئې دواړه پښې کټ شوی وی .

صاحب دعنایه رحمه الله یوه ضابطه بیان کړې ده.هغه دا که یوکس داسې رقبه آزاده کړی .چه کامل الرق وی .اود آزادونکی په ملك کي وی .اودا آزادول د کفاره د نیت سره متصل وی .اوددې جنس منفعت چې په هغې باندې هغه قائمه وی .هغه پاته وی .اودا آزادول بغیربدله وی .نودا آزادول جائزدی .نوکه داسې نه وی. نوناجائزده.نود مدبر آزادول جائز نه دی .ځکه چې دې کامل الرق نه دې.

اوکه د کفاره د نیت نه بغیرئې آزاد کړی .یا روستو نیت اوکړی .نوپه دې صورت کي هم جائز نه ده.اوکه داسې رقبه آزاده کړی .چه دهغې جنس منفعت فوت شوې وی .مثلاً دده دواړه لاسونه یا دواړه پښې کټ شوی وی .یا نابینا وی .نو د داسې رقبه آزادول جائز نه دي.

أَمَّا إِذَا اخْتَلَّتِ الْمَنْفَعَةُ فَهُوَ غَيْرُ مَانِعٍ باقې شو هغه صورت چې خلل راولی په منفعت کي نو هغه مانع نه دې حَتَّى يَجُوزَ الْعَوْرَاءُ وَمَقْطُوعَةُ إِحْدَى الْيَدَيْنِ وَإِحْدَى الرِّجْلَيْنِ مِنْ خِلَافٍ نو جائز دې په کفاره کي هغه څارویې چې یوه سترګه نې نه وی یا یو لاس یا یوه پښه ئې ادل بدل کټ شوې وی لِأَنَّهُ مَا فَاتَ جِنْسُ الْمَنْفَعَةِ بَلِ اخْتَلَّتْ ځکه چې په دې صورت کي نه دې فوت شوې جنس منفعت بلکه په دې کي خلل راغلې دې بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَتَا مَقْطُوعَتَيْنِ مِنْ جَانِبٍ وَاحِدٍ اوکه دده په منفعت کي خلل نشته.ځکه چې جنس منفعت زائل نشو.بلکه مختل شوې دې.په خلاف ددې چې کله یو لاس او یوه خپه دواړه د یو اړخ نه کټ شوی وی حَيْثُ لَا يَجُوزُ نو ( دا) جائز نه دی لِفَوَاتِ جِنْسِ مَنْفَعَةِ الْمَشْيِ ځکه چې د تللو جنس منفعت فوت شوې دې إِذْ هُوَ عَلَيْهِ مُتَعَذِّرٌ ځکه چې په دې باندې تلل متعذر دی

حل اللغة: ① العوراء: هغه حیوان (څاروې) چې یوه سترګه ئې نه وی ]



تشریح:- البته دا چې جنس منفعت فوت شوې نه وی .بلکه مختل شوې وی .نوددې رقبه آزادول مانع دکفاره نه دی .نوکه داسې رقبه آزاده کړی .چه یوه سترګه ئې وی .یا د ده یولاس د یو اړخ اویل لاس د بل اړخه کټ شوې وی .نودا په کفاره د ظهارکي آزادول جائز دی .ځکه چې ددوی جنس منفعت فوت شوې نه دې بلکه مختل شوې دې.

اوکه یوه پښه اویو لاس دواړه د یو اړخ نه کټ شوی وی .نوددې آزادول جائزنه دی .ځکه چې د مشی (تلو) جنس منفعت فوت شوې وی .ځکه چې ددې کس لپاره تلل ممکن نه دی .

اود صاحب عنایه رحمه الله په بیان شوې ضابطه کي آخرې قید دا وو چه آزادول بغیربدله وی .نوکه یوکس خپل غلام په بدل سره آزاد کړلو.نوکفاره نه ادا کیږی .(مثلاً ورته ئې اووئیل که تا دا کار اوکړلو.نوته به آزاد ئې)

وَيَجُوزُ الْأَصَمُّ او کوڼ غلام آزادول جائز دی وَالْقِيَاسُ أَنْ لَا يَجُوزَ قیاس داوو چه جائز نه وی وَهُوَ رِوَايَةُ النَّوَادِرِ او اوهم دا د نوادر روایت دې لِأَنَّ الْفَائِتَ جِنْسُ الْمَنْفَعَةِ ځکه چې جنس منفعت فوت شو إِلَّا أَنَّا اسْتَحْسَنَّا الْجَوَازَ .خو مونږ استحساناً جائز اوګرځولو. لِأَنَّ أَصْلَ الْمَنْفَعَةِ بَاقٍ، فَإِنَّهُ إِذَا صِيحَ عَلَيْهِ سَمِعَ ځکه چې اصل منفعت پاته دې.چه کله په تیزه خبره اوکړې شی .نو آوری حَتَّى لَوْ كَانَ بِحَالٍ لَا يَسْمَعُ أَصْلًا بِأَنْ وُلِدَ أَصَمَّ تردې که دده حالت داسې وی .چه بالکل نشی آوریدلې.په دې طریقه چې مادر زاد(مورزاده (پیدائشی)) کوڼ وی وَهُوَ الْأَخْرَسُ لَا يُجْزِئُهُ اوهم دا ګونګا دې.نو دده آزادول جائز نه دی .

حل اللغة: ① الاصم: کوڼ ]

تشریح:- دکوڼ غلام او وینځې په اړه کي علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی .چه د قیاس تقاضا خوداده.چه ددې آزادول جائزنشی .اوهم دا نادر روایت دې.ځکه چې د کوڼ ته هم جنس منفعت فوت شوې دې.خواستحساناً د دې آزادول جائز ګرځولې شوی دی .ځکه چې اصل منفعت باقی دې.ځکه که چغه ورته اووهلې شی .نوهغه اوریدې شی .اوکه په داسې حالت کي وی .چه بیخی اوریدل نشی کولې.نودې زیږیدل کوڼ دې.اوګونګا هم دې.نود داسې غلام آزادول کافی نه دی .

باتې شوه دا خبره چې جنس منفعت فوت شی .نوپه کفاره کي ددې آزادولې مانع دی .نوددې دلیل دا دې.چه د جنس منفعت فوت کیدو په وجه دا کس دهلاك شوی په مرتبه کي شو.ځکه چې دانسان قیام دده د منافعو سره وابسته وی .

## دمقطوع الابهامین حکم

وَلَا يَجُوزُ مَقْطُوعُ إِبْهَامَيِ الْيَدَيْنِ او جائز نه دی .(آزادول د هغه کس) چې د دواړه لاسونو دواړه متې ګوتې ئې کټ وی لِأَنَّ قُوَّةَ الْبَطْشِ بِهِمَا ځکه چې د نیولو قوت هم په دې دواړو ګوتو دې فَبِفَوَاتِهِمَا يَفُوتُ جِنْسُ الْمَنْفَعَةِ نو ددې دواړو په فوت کیدلو سره جنس منفعت زائل کیږی

حل اللغة: ① ابهامی: تثنیه د ابهام: ځنمچه (قچه) ګوته ② البطش: نیول ]

تشریح:- مسئله،که دیوغلام د دواړو لاسونودواړه بټه ګوتې کټ شوې وی .نوپه کفاره دظهارکي ددې آزادول جائز نه دی .دلیل دا دې.چه ددواړو لاسونودواړه بټه ګوتې کټ کیدو سره دده د نیولو توان زائله شو.نود نیولود توان ختمیدو په وجه جنس منفعت فوت شو.اوورانده تیرشوی دی .چه د جنس منفعت فوت کیدل د کفاره لپاره مانع دی.ددې امله ددې غلام یا وینځې آزادول جائز نه دی .

وَلَا يَجُوزُ الْمَجْنُونُ الَّذِي لَا يَعْقِلُ او دغه ډول داسې مجنون رقبه (آزادول) جائز نه دی .چه دده عقل نه وی لِأَنَّ الِانْتِفَاعَ بِالْجَوَارِحِ لَا يَكُونُ إِلَّا بِالْعَقْلِ ځکه چې د اندامونو نه نفع اخستل بغیر د عقل نه نشی کیدای فَكَانَ فَائِتَ الْمَنَافِعِ نودا رقبه به د منفعت فوت کیدونکې وی وَالَّذِي يُجَنُّ او کومه رقبه چې کله مجنون کیږی

وَيُفِيقُ يُجْزِيهِ او كله ورته افاقه ( صحت ) كيږي نو( دده آزادول ) كافي دى لِأَنَّ الِاخْتِلَالَ غَيْرُ مَانِعٍ خكه په ده كي چې كوم خلل دې.هغه مانع نه دې

حل اللغة* ① الجوارح: اندامونه ② اختلال: خلل راوستل،ركاوټ اچول]

تشريح:-اود ليونى غلام يا وينځې آزادول چې عقل په كي نه وى جائز نه دى .دليل دا دې.چه داندامونونه نفع اخستل د عقل نه بغيرنه كيږي .نودا هم فائت المنفعت شو.

ⓐاوهغه غلام يا وينځه چې كله پرې لينتوب راځي .اوكله صحيح وى .دعقل په حالت كي دهغې آزادولوسره كفاره ادا كيږي .خكه چې په دې كي كوم خلل دې.هغه مانع دكفاره نه دې.

اوهغه غلام يا وينځه چې كله پرې لينتوب راځي .اوكله صحيح وى .دعقل په حالت كي دهغې آزادولوسره كفاره ادا كيږي .خكه چې په دې كي كوم خلل دې.هغه مانع دكفاره نه دې.

وَلَا يُجْزِءُ عِتْقُ الْمُدَبَّرِ وَأُمِّ الْوَلَدِ او مدبر او ام ولد آزادول كافي نه دى لِاسْتِحْقَاقِهِمَا الْحُرِّيَّةَ بِجِهَةٍ خكه چې دا دواړه په يو جهت سره دآزادي مستحق شوى دى فَكَانَ الرِّقُّ فِيهِمَا نَاقِصًا نو په دې دواړو كي رقيت ناقص شو.

تشريح:- اودمدبراوام ولده په كفاره كي آزادول كافي نه دى .دليل دا دې.چه په قرآن كريم كي تحريررقبة دى .اورقبه مطلق دې.اومطلق چې كله ذكرشي .نودهغې نه فرد كامل مراد وى .اومدبراوام ولد رقبه كامله نه ده.نوخكه مدبر د تدبير په وجه مستحق د حريت دې.اوام ولد داستيلاد په وجه د آزادئ مستحق ده.نومعلومه شوه.چه په دې دواړوكي د رقيت معنى ناقص ده.

## په كفاره ظهاركي د مكاتب آزادولوحكم

وَكَذَا الْمُكَاتَبُ الَّذِي أَدَّى بَعْضَ الْمَالِ اوهم دا حكم دې.د هغه مكاتب چې ده څه مال ادا كړې وى لِأَنَّ إِعْتَاقَهُ يَكُونُ بِبَدَلٍ خكه چې دده آزادول به په بدل سره شي

تشريح:- مصنف رحمه الله فرمائى .چه هغه مكاتب چې د كتابت څه بدل ئې ادا كړې وى .په كفاره دظهاركي دهغه آزادول هم كافي نه دى .دليل دا دې.چه دده آزادول په عوض دى .اوعوض دقربت او عبادت معنى باطلوى. ①هم دا ظاهرروايت دى.اوامام زفر،شافعي مالك او په يوروايت كي امام احمد رحمه الله هم ددې قائلين دى

وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله أَنَّهُ يُجْزِيهِ اود ابوحنيفه رحمه الله نه روايت دې.چه دداسې مكاتب آزادول كافي دى لِقِيَامِ الرِّقِّ مِنْ كُلِّ وَجْهٍ خكه چې رقيت من كل وجه موجود دې ، وَلِهَذَا تَقْبَلُ الْكِتَابَةُ الِانْفِسَاخَ اوهم په دې وجه كتابت فسخ قبلوى

حل اللغة* ① الانفساخ: فسخ كيدل]

تشريح:- رضي الله عنه اوحسن رحمه الله دامام ابوحنيفه رحمه الله نه يو روايت دا هم نقل كړې دې.چه د داسې مكاتب آزادول هم كافي دى .دليل دا دې.چه مكاتب ترڅو پورې بدل كتابت پوره نه وى ادا كړې.نوترهغه وخته پورې هغه من كل وجه رقيق او غلام وى .خكه چې نبى ﷺ فرمائيلى دى .«المكاتب عبد ما بقى عليه درهم» يعنى مكاتب به ترهغه وخته پورې غلام وى .ترڅوچه په ده باندې يوه روپئ هم پاته وى .اوچونكه مكاتب من كل وجه رقيق دې.نوكتابت فسخ قبلوى .برابره ده.كه دا فسخ د بدل كتابت دڅه برخه قبلولو نه وړاندې وى اوكه روسته وى .

بِخِلَافِ أُمُومِيَّةِ الْوَلَدِ وَالتَّدْبِيرِ .په خلاف د ام ولد او مدبر لِأَنَّهُمَا لَا يَحْتَمِلَانِ الِانْفِسَاخَ خكه چې دا دواړه د فسخ احتمال نه لرى.



تشريح:-ام ولد او مدبر ددې په خلاف دى .خكه چې دا دواړه د فسخ كيدو احتمال نه لرى .نوپه دې دواړو كي رقيت ناقص شو.اووړاندې تيرشوى دى .چه په كفاره د ظهاركي د داسې رقبه آزادول ضرورى دى .چه كامل الرق وى ؛

## دبدل كتابت نه ادا كونكي مكاتب آزادولوحكم

فَإِنْ أَعْتَقَ مُكَاتَبًا لَمْ يُؤَدِّ شَيْئًا اوكه داسې مكاتب ئې آزاد كړو.چه ده هيڅ مال كتابت ادا كړې نه وو جَازَ نوجائز دې

تشريح:- مسئله دا ده.كه په كفاره د ظهاركي مظاهرداسې مكاتب آزاد كړلو.چه هغه تراوسه پورې په بدل كتابت كي څه ادا كړى نه دى .① نوزموږ په نيزدا جائز دى .اودغه ډول دامام محمد رحمه الله نه هم دا يوروايت دې

خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ رحمه الله ( په دې كي ) د امام شافعي رحمه الله اختلاف دې كړلَهُ أَنَّهُ اسْتَحَقَّ الْحُرِّيَّةَ بِجِهَةِ الْكِتَابَةِ دامام شافعي رحمه الله دليل دادې.چه مكاتب د كتابت په وجه دآزادي مستحق شوې دې فَأَشْبَهَ الْمُدَبَّرَ نود مدبر مشابه شو

تشريح:- اوامام شافعي رحمه الله فرمائى .چه د داسې مكاتب په كفاره ظهار كي ادا كول كافي نه دى . اوهم دا قول دامام زفرامام مالك دې.اودامام احمد رحمه الله نه هم يو روايت دا دې. دليل دا دې.چه لكه څنګه مدبرد تدبيرپه وجه مستحق د آزادې شو.دغه ډول مكاتب د كتابت په وجه مستحق د آزادئ ګرځيدلي دې.نواې احنافولكه څنګه چې ستاسوپه نيزپه كفاره ظهاركي د مدبرآزادول جائزنه دى .دغه ډول د مكاتب آزادول هم پكارده چې جائزنشي .

وَلَنَا أَنَّ الرِّقَّ قَائِمٌ مِنْ كُلِّ وَجْهٍ مَا بَيَّنَّا او زموږ دليل دادې.چه ( په مكاتب كي ) من كل وجه رقيت موجود دې.لكه چې موږ ( دا) بيان وَلِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ الْمُكَاتَبُ عَبْدٌ مَا بَقِيَ عَلَيْهِ دِرْهَمٌ (١) اودا دليل د نبى كريم ﷺ فرمان دې. «المكاتب عبد مابقى عليه درهم»

تشريح:-اوزموږ دليل دا دې.چه مكاتب من كل وجه رقيق اوغلام دې.موږ وړاندې بيان كړى دى .چه كتابت د فسخ احتمال لرى .اومكاتب ددې امله هم رقيق دې.چه لبى ﷺ فرمائيلى دى . «المكاتب عبدما بقى عليه درهم»بهرحال مكاتب من كل وجه رقيق دې.نوپه كفاره دظهاركي به دده آزادول هم صحيح وى .ددې په خلاف كه مكاتب په بدل كتابت كي څه هم ادا كړل.نوپه ده سره د آزاديدو نه وړاندې كفاره نه ادا كيږي .خكه چې كفاره عبادت دې.اوعبادت خالص دالله تعالى لپاره وى .اوهركله چې مكاتب په بدل كتابت كي څه ادا كړل.نودا عبادت خالص دالله تعالى لپاره پاتې نشو.نوخكه د داسې مكاتب آزادول په كفاره د ظهاركي نه كافي كيږي .

وَالْكِتَابَةُ لَا تُنَافِيهِ او كتابت د آزادئ منافى نه دې فَإِنَّهُ فَكُّ الْحَجْرِ بِمَنْزِلَةِ الْإِذْنِ فِي التِّجَارَةِ إِلَّا أَنَّهُ بِعِوَضٍ خكه چې كتابت ممانعت لرې كول دى .د ،، اذن فى التجارة،، په مرتبه كي .مګر داچه كتابت په عوض سره دې

حل اللغة* ① فك:آزادول ② الحجر:بنديز]

تشريح:- په «والكتابة لا ينافيه» سره دوهم دليل دې.د دليل حاصل دا دې.چه مكاتب د كتابت نه وړاندې رقيق دې.اود كتابت په وجه رقيت نه زائله كيږي .خكه چې شى په خپل منافى سره ختميږي .اوكتابت د رقيت منافى نه دې.ددې امله كتابت دهغه ركاوټ د لرې كاوه نوم دې.كوم چې په ده باندې د غلام او رقيت

---

١) من حديث عمروبن شعيب عن أبيه عن جده رضي الله عنهم أخرجه أبوداد فى العتاق باب ١ رقم ٣٩٢٦)_

د امله وو.اودممانعت اوركاوټ لرې كول د رقيت سره منافي نه دى .لكه څنګه چې مولى خپل يوغلام ته د تجارت اجازت وركړې وى .نودغه غلام د غلامۍ نه خارج نشو.څكه چې د تجارت اجازت وركول د رقيت سره منافي نه دى .

فَيَلْزَمُ مِنْ جَانِبِهِ نود مولا د اړخ به لازم وى وَلَوْ كَانَ مَانِعًا اوكه دا( په كفاره كې د آزادولو نه ) مانع وو يَنْفَسِخُ مُقْتَضَى الْإِعْتَاقِ نود اعتاق د مقتضى په وجه به فسخ كيدله إِذْ هُوَ يَحْتَمِلُهُ

تشريح:- په ﴿إلا انه بعوض﴾ سره د يوسوال خواب وركوى .سوال دا دې.كه كتابت په تجارت كې د اجازت وركولو شان د ركاوټ لرې كولونوم وى .نو يكار ده.چه مولى د كتابت په فسخ كولوكې مستقل وى .لكه څنګه چې د ماذون فى التجارة په معزول كولوكې مولى مستقل وى .حالانكه مولى يواځې بغيرد مكاتب د رضا نه عقد كتابت نشى منسوخ كولې.نوچه دا توپير موجود دې.ددې باوجود يوپه بل باندې قياس كول صحيح نشو.

ج دسوال دځواب حاصل دا دې.چه كتابت د ركاوټ اوبنديزپه عوض سره د لرې كولونوم دې.نوكتابت دمولى دارخه لازم دې.اوددې په خلاف په تجارت كې اجازت وركول دى .څكه چې دا بغيرعوضه د ركاوټ لرې كولونوم دې.نودا د مولى په حق كې لازم نه دې.نوچه دا فارق موجود وى .ددې باوجود يو په بل باندې قياس كول صحيح نه دى .② دوهم ځواب دا دې.چه مورږ دا هم تسليم كړو.چه عقد كتابت په كفاره كې د آزادۍ نه مانع ده.خوچه كله د مكاتب په كفاره كې آزاد كړى .نوداعتاق د تقاضا د امله د آزادولو نه وړاندې عقد نكاح ختميږى .څكه چې عقد كتابت د فسخ نكاح احتمال لرى .نوهركله چې د مولى د آزادولو نه وړاندې عقد كتابت فسخ شو.نودا غيرمكاتب لره آزاودل دى . د مكاتب آزادول نشو. نواوس څه اشكال پاته پاتې نشو.

إِلَّا أَنَّهُ تُسَلَّمُ لَهُ الْأَكْسَابُ وَالْأَوْلَادُ څكه چې دا د فسخ احتمال لرى .مګر داچه د كتابت لپاره به دده ګټه او دده اولاد سپارلې شى لِأَنَّ الْعِتْقَ فِي حَقِّ الْمَحَلِّ بِجِهَةِ الْكِتَابَةِ څكه چې آزادى په ذات كې د كتابت په وجه دې أَوْ لِأَنَّ الْفَسْخَ ضَرُورِيٌّ لَا يَظْهَرُ فِي حَقِّ الْوَلَدِ وَالْكَسْبِ يا څكه فسخ ضرورة ثابت ده.د ګټې او اولاد په حق كې به نه ښكاره كيږى .

حل اللغة: ① اكساب: كسب كول ،ګټه كول ]

تشريح:-په﴿ إلا انه يسلم له الإكساب الخ﴾ په.دې سره د يوسوال ځواب دې.سوال دا دې.كه په كفاره كې د مكاتب آزادول صحيح وى .اوداعتاق د تقاضا د امله عقدكتابت فسخ هم شو.نوددې مكاتب اواولاد او ټوله ګټه پكارده چې د مولى لپاره شى .لكه څنګه كه يوكس په كفاره كې غلام ماذون له التجارة آزاد كړى .او د هغه سره دهغه دګټې څه سمان وى .نوهغه واړه به د مولى لپاره وى .

ج ①اولنې ځواب دا دې.چه دمكاتب په حق كې آزادى د مكاتب د امله ده.نوهركله چې داسې شوه.نودده دملك نه دده اولاد اودده ګټه نه اوځى .② دوهم ځواب دا دې.چه دلته د كتابت فسخ د صحت اعتاق د امله ضرورة ثابت دى .اوكوم څيزچه د اړتيا په وجه ثابت شى .نوهغه په قدرت د اړتيا ثابت وى .نوپه كفاره كې د آزادۍ دجواز په حق كې دكتابت فسخ ظاهريږى .دده داولاد د سامان په حق كې به نه ښكاره كيږى .نوهركله چې د مكاتب داولاد او دده دګټې سامان په حق كې كتابت نه فسخ كيږى .نود ده اولاداو ګټه به دده وى .د مولى به نه وى .

پلار يا ځوئې په اخستلو كې دكفاره ظهارادا كولونيت كول

وَإِنِ اشْتَرَى أَبَاهُ أَوِ ابْنَهُ يَنْوِي بِالشِّرَاءِ الْكَفَّارَةَ اوكه خپل پلار يا زوې ئې واخستلو.په داسې حال كې چې په اخستلو سره ئې دكفاره نيت كړې دې جَازَ عَنْهَا نودا كفارې د ظهار ( اړخ ) نه جائز دې



تشريح:- مسئله دا ده.كه په يوكس باندې كفاره ظهاروى .اوده خپل پلاريا خوئې واخستل.اودهغوى د آزادولو په وخت كې د كفاره نيت اوكړى .نوكفاره ادا كيږى .① دا قول دامام ابوحنيفه رحمه الله دى

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رحمه الله لَا يَجُوزُ او امام شافعى رحمه الله فرمانى .چه ناجائز دې وَعَلَى هَذَا الْخِلَافِ كَفَّارَةُ الْيَمِينِ او هم په دې اختلاف باندې كفاره د يمين ده وَالْمَسْأَلَةُ تَأْتِيكَ فِي كِتَابِ الْأَيْمَانِ إِنْ شَاءَ اللَّهُ اودا مسئله به په كتاب الايمان كې نژدې انشاء الله راشى .

تشريح:- اوامام شافعى رحمه الله فرمانى .چه كفاره ظهارنه ادا كيږى .هم دا قول دامام شافعى ،امام مالك امام احمد اودامام زفر رحمه الله هم دې.اوكه په كفاره د يمين كې دا خبره راشى .نوپه هغې كې هم دا اختلاف دې كوم چې به انشاء الله په كتاب الايمان كې بيانوو.

دمالدارسړى نصف مشترك غلام آزادول

وَإِنْ أَعْتَقَ نِصْفَ عَبْدٍ مُشْتَرَكٍ وَهُوَ مُوسِرٌ نوكه د مشترك غلام نيم آزادكړو.حالانكه دا كس توانګر دې وَضَمِنَ قِيمَةَ بَاقِيهِ اود پاته غلام د قيمت ضامن شو لَمْ يَجُزْ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله ( [1] ) نود ابوحنيفه رحمه الله په نيز جائز نه دى

تشريح:-صورت د مسئلې دا دې.چه په كوم سړى باندې كفاره ظهارواجب وه.اوده په كفاره كې داسې غلام نصف آزاد كړلو.كوم چې دده او دده د انډيوالان په مينځ كې مشترك وو.حالانكه دا آزادونكې توانګروى .اودې دخپل شريك لپاره د پاته غلام د قيمت ضامن شو.نود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيزپه دې سره كفاره ظهارنه ادا كيږى .

وَيَجُوزُ عِنْدَهُمَا اود صاحبينو رحمهما الله په نيز جائز دې .لِأَنَّهُ يَمْلِكُ نَصِيبَ صَاحِبِهِ بِالضَّمَانِ څكه چې ده ضمان وركړو.اود خپل شريك د برخې مالك شو فَصَارَ مُعْتِقًا كُلَّ الْعَبْدِ عَنِ الْكَفَّارَةِ وَهُوَ مِلْكُهُ نو پوره غلام دكفارې آزادونكې شو.په داسې حال كې چې دا غلام دده په ملك كې دې

تشريح:- دصاحبينو رحمهما الله په نيز ادا كيږي .اوكه آزادونكې غريب وو.نوپه اتفاق سره كفاره نه ادا كيږى . د دوى د دليل حاصل دا دې.چه دنيم غلام آزادولو نه چې ده خپل شريك ته دپاته نيم ضمان وركړلو.نودې د هغه دحصۀ هم مالك شو.نوداكس په كفاره دظهاركې د پوره غلام آزادونكې شو.په داسې حال كې چې دې د واړه غلام مالك وو.اودواړه غلام په آزادولوسره كفاره ادا كيږى .نوپه دې صورت كې هم كفاره ادا شوه.

دلته دا خبره ياد ساتئ چې د صاحبينو رحمهما الله په نيز اعتاق تجزى نه قبلوى . امام ابوحنيفه رحمه الله په نيزاعتاق تجزى قبلوى .يعنى كه غلام لږ لږ آزاد كړى .نودامام ابوحنيفه رحمه الله په نيزچه څومره ئې آزاد كړې وى .هم هغه مومره آزاديږى .خوصاحبينو رحمهما الله په نيز كه دغلام نيمه برخه يا كم يا زيات آزاد كړى .نو واړه غلام آزاديږى . څكه چې د دوى په نيزد بعضې برخې په آزادولو سره واړه غلام آزاديږى .

بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ الْمُعْتِقُ مُعْسِرًا ددې په خلاف كه آزادونكې فقير وى نوجائز نه دې لِأَنَّهُ وَجَبَ عَلَيْهِ السِّعَايَةُ فِي نَصِيبِ الشَّرِيكِ څكه چې په غلام باندې د شريك د برخې لپاره مزدورى كول او ادا كول واجب دى فَيَكُونُ إِعْتَاقًا بِعِوَضٍ نودا آزادول به په عوض سره شى

حل اللغة: ① معسر:غريب ② السعاية: مزدورى ]

تشريح:- ددې په خلاف كه كفاره ادا كونكې غريب وى .نوپه اتفاق سره كفاره نه ادا كيږى .څكه چې په دې صورت كې به په غلام واجب وى .چه دې اوګټې .اودخپل شريك دحصې قيمت ادا كړى .نودا آزاودل په

[1]) القول الراجح هو قول أبى حنيفة رحمه الله كذا فى فتح القدير(١٠٠\٤) والكفاية (١٠١\٤) والدرالمختار(٦٣٠\٢) والبحرالرائق (١٠٤\٤) نقلاً عن القول الراجح (٣٥٥\١)-

عوض شو.اګرچه دا عوض ازادونکی ته نه حاصلیږی .بلکه دده شریك ته حاصلیږی .خومقصود دا دي.چه په غلام باندي د رقبه په آزادولوکي عوض واجب شو.حالانکه پکار وه.چه تحریرد رقبه بلا عوض وو.ددي امله کفاره نه ادا کیږی .

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله أَنَّ نَصِيبَ صَاحِبِهِ يَنْتَقِصُ عَلَى مِلْكِهِ اود امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادي. چي دده د شریك برخه دده په ملك باندي ناقص پاتي شوه ثُمَّ يَتَحَوَّلُ إِلَيْهِ بِالضَّمَانِ بیا راتاو شو.د ضمانت په ذریعه د آزادونکی په ملك کي راغی. وَمِثْلُهُ يَمْنَعُ الْكَفَّارَةَ او داسي کیدل د کفارهٔ ظهار نه‌مانع دي.

تشریح:- په عبارت کي څه مشکل نشته.

## خپله نیمه برخه په کفاره کې آزادول اوبیا نور آزادول

فَإِنْ أَعْتَقَ نِصْفَ عَبْدِهِ عَنْ كَفَّارَتِهِ اوکه خپل نیم غلام ئې آزاد کړو.په خپله کفاره کي ثُمَّ أَعْتَقَ بَاقِيَهُ عَنْهَا جَازَ بیا ئې پاته هم ازادکړو.نوجائز دي

تشریح:- مسئله دا ده.که یوکس خپل نیم غلام په کفاره کي آزاد کړلو.اوبیا ئې پاته نیم هم آزاد کړلو.نودا جائزدی .یعنی کفاره ادا کیږی .

دا جوازد استحسان د امله دي.ګنی د قیاس مطابق دامام ابوحنیفه رحمه الله په نیزدا نه جائز کیږی .لکه څنګه چي په عبد مشترك کي دعدم جواز حکم دی.څکه چي په نصف آخرکي نقصان راغلو.

لِأَنَّهُ أَعْتَقَهُ بِكَلَامَيْنِ څکه چي ده غلام په دوي [دوه] خله کلام کاوه سره آزاد کړي دي وَالنُّقْصَانُ مُتَمَكِّنٌ عَلَى مِلْكِهِ بِسَبَبِ الْإِعْتَاقِ بِجِهَةِ الْكَفَّارَةِ او کوم نقصان چي دده په ملکیت کي پیدا شو.هغه په کفاره کي د آزادولو په وجه دي وَمِثْلُهُ غَيْرُ مَانِعٍ اوداسي نقصان د کفاره نه مانع نه دي كَمَنْ أَضْجَعَ شَاةً لِلْأُضْحِيَةِ (دا) د هغه کس پشان دي.چه ده د قربانئ لپاره وزه راسملوله ،فَأَصَابَ السِّكِّينُ عَيْنَهَا بیا د وزه په سترګه کي چاړه اولګیدله

حل اللغة* ① اضطجع: راسمولی ② السکین: چاړه ③ الاضحیة: قربانی ]

تشریح:- وجه د استحسان دا ده.چه دي کس دوي [دوه] خله کلام اوکړلو.اوغلام ئې آزاد کړلو.اوکوم نقصان چي په نصف آخرکي واقع شوي دي.نوهغه دده په ملك کي د پاتي کیدوپه باوجود په کفاره کي د ادا کولوپه وجه راغلي دي.اوداسي قسم نقصان د کفاره ادا کاوه لپاره مانع نه وی .لکه څنګه چي یوکس د قربانئ لپاره وزه په مځکه پرخولي وی . او د وزه په سترګه کي چاړه لاړه شی .نودا نقصان د قربانئ نه مانع نه دي.

بِخِلَافِ مَا تَقَدَّمَ .په خلاف د هغه نقصان کوم چي په تیره شوي مسئله کي تیرشو لِأَنَّ النُّقْصَانَ تَمَكَّنَ عَلَى مِلْكِ الشَّرِيكِ څکه چي هغه نقصان د شریك په ملك کي پیدا شوي دي وَهٰذَا عَلَى أَصْلِ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله (1) اودا تقریر د امام ابوحنیفه رحمه الله په اصل باندي دي

تشریح:- ددي په خلاف هغه مسئله ده.کومه چي وړاندي تیره شوه.څکه چي هغه نقصان خودشریك په ملك کي پیدا شوي وو.نودا نقصان کوم چي په نصف آخر کي پیدا شوي دي.کفاره اړخ ته اړول ممکن نه دی .څکه چي دا کس د آزادئ کولوپه وخت کي د دغه نقصان مالك نه وو.دا تقریردامام ابوحنیفه رحمه الله په اصولوباندي وو.

وَأَمَّا عِنْدَهُمَا فَالْإِعْتَاقُ لَا يَتَجَزَّأُ اود صاحبینو رحمهما الله په نیز اعتاق متجزی (ټکړي ټکړي) کیږی نه فَإِعْتَاقُ النِّصْفِ إِعْتَاقُ الْكُلِّ نود نیم غلام آزادول د کُل آزادول دی .فَلَا يَكُونُ إِعْتَاقًا بِكَلَامَيْنِ نو دوي [دوه] خله کلام

(1) القول الراجح هو قول أبی حنیفة رحمه الله كذا فی مجمع الأنهر(١|٤٥٩) و رد المحتار(٢|٦٢٩) وفتح القدیر(٤|١٤..) نقلاً عن القول الراجح (١|٣٥٦)۔



کاوه سره آزادول به نه وی .

تشریح:- صاحبینو رحمهما الله په نیز چونکه ازادول تجزی نه قبلوی .نوچه هرکله نیم غلام ازاد شو.هم په هغه وخت کي پوره غلام آزاد شو.نودصاحبینو رحمهما الله په نیزدا غلام په دوي [دوه] خله کلام کولوسره آزاد شوي نه دي.بلکه په یوکلام سره آزاد شوي دي.

## خپل نیم غلام آزادولونه روسته جماع کول اوبیا پاته غلام آزادول

وَإِنْ أَعْتَقَ نِصْفَ عَبْدِهِ عَنْ كَفَّارَتِهِ اوکه خپل نیم غلام ئې د خپلي کفاري نه آزادکړو ثُمَّ جَامَعَ الَّتِي ظَاهَرَ مِنْهَا بیا دي ښځي سره جماع اوکړله.د کومي سره ئې چي ظهار کړي وو ثُمَّ أَعْتَقَ بَاقِيَهُ بیائې پاته غلام آزاد کړو لَمْ يُجْزِهِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله نود ابوحنیفه رحمه الله په نیز جائز نه دي

تشریح:- که یوکس خپل نصف غلام په کفاره کي آزاد کړلو.اوبیا ئې هغه ښځي سره جماع اوکړله.د کومي نه چي ئې ظهارکړي وو.اوبیا ئې پاته نصف آزاد کړلو.① نودامام ابوحنیفه رحمه الله په نیزدا آزادول کافی نه دی .

لِأَنَّ الْإِعْتَاقَ يَتَجَزَّأُ عِنْدَهُ څکه چي د امام صاحب رحمه الله په نیز اعتاق متجزی کیږی وَشَرْطُ الْإِعْتَاقِ أَنْ يَكُونَ قَبْلَ الْمَسِيسِ بِالنَّصِّ اود اعتاق شرط په نص د قرآن سره دادي.چه د جماع نه وړاندي وی وَإِعْتَاقُ النِّصْفِ حَصَلَ بَعْدَهُ حالانکه نیم غلام آزادول دجماع نه روسته شوی دی

حل اللغة* ① یتجزا: تقسیمیږی ② مسیس: مس کول ]

تشریح:- دامام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دا دي.چه ددوی په نیزآزادی ویش کیدای شی .نودنصف آزادول دواړه آزادول نه دی .اود اعتاق شرط دا دي.چه دغلام آزادول دجماع نه مخکښي وی .څکه چي دالله تعالی ارشاد دي.((فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مِّن قَبْلِ أَن يَتَمَاسَّا)) اودلته نیم آزادول دجماع نه روسته دی . ددي امله آزادول د واړه غلام آزادی ده.(اودلته د واړه غلام آزادی موجود شوي نه ده نوجائزنه ده)

وَعِنْدَهُمَا إِعْتَاقُ النِّصْفِ إِعْتَاقُ الْكُلِّ اود صاحبینو رحمهما الله په نیز د نیم (غلام) په آزدولو سره پوره آزادیږی فَصَارَ الْكُلُّ قَبْلَ الْمَسِيسِ نود پوره آزدول د جماع نه وړاندي اوموندي شو.

تشریح:- اودصاحبینو رحمهما الله په نیز جائزدی .څکه چي غلام ازادی دجماع نه وړاندي موجود شوي ده.نوځکه جائزده.

## په غلام آزادولوباندي دعدم قدرت په صورت کې روژې نیول

وَإِذَا لَمْ يَجِدِ الْمُظَاهِرُ مَا يُعْتِقُ اوکه ظهارکونکی داسي شی بیا نه موندو.چه آزاد ئې کړی فَكَفَّارَتُهُ صَوْمُ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ لَيْسَ فِيهِمَا شَهْرُ رَمَضَانَ وَلَا يَوْمُ الْفِطْرِ وَلَا يَوْمُ النَّحْرِ وَلَا أَيَّامُ التَّشْرِيقِ نو ددي کفاره بلا ناغه دوي [دوه] میاشتي روژي دی .چه په دي کي د رمضان میاشت نه وی .اود وړوکی اختر،او غټ اختر ورځ او تشریق نه وی

حل اللغة* ① متتابعین: بلا ناغه ② التشریق: اوچول ،اوایام التشریق د غټ اختر هغه ورځي په کومو کي چي به د قربانئ غوښي اوچولي شوي]

تشریح:- مسئله که دظهارکونکی په غلام آزادولو قدرت نه وی .یا داچه غلام نه وی .یا دا چي غلام وی .خودده د آزادولو وس نه وی .نوپه داسي صورت کي به دوي [دوه] میاشتي بلا ناغه روژي نیسی .خوپه دي شرط چي ددي دوو میاشتو په مینځ کي د رمضان میاشت نه وی .اود وړوکی اختراود لوي اختر اودغه ډول ددي (لوي اختر) نه روسته دري ورځي دتشریق نه وی .دوي [دوه] میاشتي روژي که د میاشت په حساب سره ئې نیسی . نوپه هرصورت کي جائزدی .که میاشت د دیرشو ورځو وی .اوکه د یوکم دیرشو.اوکه د

میاشت د مینځ نه روژه نیول پیل کړي .نوشپېته روژې به پوره کوي .اوکه د ۵۹ ورځو نیولو نه روسته ئې افطاراوکړلو.نوپه ده به د سر نه دوباره روژې نیول ضروري وي .

**أَمَّا التَّتَابُعُ فَلِأَنَّهُ مَنْصُوصٌ عَلَيْهِ** بلا ناغه کیدل په هغه دلیل سره دی .چه هغه په صراحت سره قرآن کي موجود دي **وَشَهْرُ رَمَضَانَ** او پاتې شوه (په منځ کي) د رمضان میاشت (نه کیدل) **لَا يَقَعُ عَنِ الظِّهَارِ** نودا په دې وجه دی .چه د رمضان روژه په کفارې د ظهار سره نه واقع کیږي **لِمَا فِيهِ مِنْ إِبْطَالِ مَا أَوْجَبَهُ اللَّهُ** ځکه چې په دې کي د هغه شي ختمول دی .کوم ته چي الله تعالی واجب ونیلی دی

**تشریح:-** تتابع یعنی بلا ناغه روژې نیول خو ددې امله ضروري دی .چه په قرآن پاك کي ددې صراحت موجود دې.ارشاد دي ((فَمَنْ لَمْ يَجِدْ فَصِيَامُ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ مِنْ قَبْلِ أَنْ يَتَمَاسَّا فَمَنْ لَمْ يَسْتَطِعْ فَإِطْعَامُ سِتِّينَ مِسْكِينًا)) اورمضان نه کیدل ددې امله ضروري ده. که په رمضان کي د ظهار روژې موجود شي .نودا هغه خیزباطلوی .کوم چي الله تعالی فرض کړي دې.ځکه چې په رمضان کي کومه روژه هم اونیولې شي .هغه هم د رمضان نه حسابیږي .د بل واجب نه نه حسابیږي .

**وَالصَّوْمُ فِي هَذِهِ الْأَيَّامِ مَنْهِيٌّ عَنْهُ** او په دې ورځو کي د روژو نه منع شوې ده **فَلَا يَنُوبُ عَنِ الْوَاجِبِ الْكَامِلِ** نو ددې ورځو روژه به د کفارې د ظهار نائب نه جوړیږي .(ځکه) چې دا کامل واجب دی .

**تشریح:-** اودا ځکه ضروري دی .چه دظهارروژې په منهی عنها ورځوکي نه وی .چه په دې پنځو ورځوکي د روژې نیولو نه نبی ﷺ منع کړې ده.دحضرت ابن عباس رضی الله عنهما حدیث دی.«أن رسول الله ﷺ قال أن لا تصوموا هذه الأيام فإنها أيام أكل وشرب وبعال» یعنی رسول الله ﷺ فرمائیلی دی .چه تاسوپه دې ورځوکي روژې مه نیسئ.ځکه چي دا د خوراك څکاك او جماع ورځې دی .(طبرانی ازعینی شرح هدایه) نوپه دې ورځوکي د روژو نیول د ظهارنائب نه دی .کومې چي کامل واجب شوی دی .

## د شپې یا د ورځې په جماع کولو تسلسل د ختمیدو حکم

**فَإِنْ جَامَعَ الَّتِي ظَاهَرَ مِنْهَا فِي خِلَالِ الشَّهْرَيْنِ لَيْلًا عَامِدًا أَوْ نَهَارًا نَاسِيًا** بیا که په دې دوې [دوه] میاشتو کي دننه ئې دې ښځې سره وطی اوکړله.د کومې سره ئې چې ظهار کړې وو.(که) په شپه کي په قصد سره وی .اوکه د ورځې په هیره وی **اسْتَأْنَفَ الصَّوْمَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ**[1] نو د امام ابوحنیفه او امام محمد رحمهما الله په نیزبه دسره (دوباره)روژه نیسی

**حل اللغة:** ① **خلال:** په مینځ کي ② **استانف:** د سرنه پیل کول]

**تشریح:-** صورت د مسئلې دا دی.که د روژو په ذریعه کفاره ظهارادا کونکی که په دوومیاشتوکي دننه د هغه ښځې سره وطی اوکړله.دکومې نه چې ئې ظهارکړې وی .برابره ده که دا وطی د شپې په قصد سره وی .اوکه د ورځې په هیره سره وی .① نودطرفینو رحمهما الله په نیزبه د سر نه روژې نیسی .امام مالك اوامام احمد رحمهما الله هم ددې قائلین دی .

② متن کي ئې جماع دهغه ښځې سره مقید کړې ده.دچانه چې ئې ظهارکړې وی .ځکه که د بلې ښځې سره ئې جماع کړې وی .نوکه دا جماع ماتونکې د روژې وی .مثلاً د ورځې په قصد باندې وطی اوکړی .نود تتابع د منقطع کیدو به په اتفاق سره د سرنه روژې نیول واجب دی .اوکه مفسد د روژې نه وی .مثلاً دورځې په هیره سره جماع اوکړی .یا د شپې اتفاقاً وطی اوکړی .نوپه دې صورت کي د تتابع د نه ماتیدو په وجه په اتفاق سره دسرنه پیل کول نشته.اودغه ډول دکومې ښځې نه چې ئې ظهارکړې وی .که په ورځ کي ئې په

[1] القول الراجح هو قول الطرفين رحمهما الله كذا في مجمع الأنهر(١\٤٦٠) والبحر الرائق (٤\١٠٦) وردالمحتار(٢\٦٣١) والهندية (١\٥١٢) نقلاً عن القول الراجح (١\٣٥٩)_



قصد سره جماع اوکړله.نوپه اتفاق سره دسرنه پیل کول لازم دی .نومعلومه شوه چه اختلاف په هغه وطی کي دی.چه مفسد د روژې نه وی .

**وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ** رحمه الله **لَا يَسْتَأْنِفُ** او ابویوسف رحمه الله فرمائی چه دسره (دوباره) روژه نیول لازمی نه دی **لِأَنَّهُ لَا يَمْنَعُ التَّتَابُعَ** ځکه چې دا تتابع نه منع کوی **إِذْ لَا يُفْسِدُ بِهِ الصَّوْمَ** ځکه چې په دې باندې روژه نه ماتیږي **وَهُوَ الشَّرْطُ** او شرط هم دا وو(چه بلا ناغه وی )

**تشریح:-** اوامام ابویوسف رحمه الله فرمائی .چه د سرنه د روژو نیولو اړتیا نشته.امام شافعی رحمه الله هم ددې قائل دی. دلیل دا دی.چه د ورځې په هیره اویه شپه کي په قصد سره جماع کول مفسد د روژې نه دی .نودا جماع د روژو دتتابع نه مانع نه ده.نودظهار په روژو کي چې کوم د بلا ناغه والی شرط وو.هغه موجود شو.نوځکه په دې صورت کي استیناف لازم نه دی.

**وَإِنْ كَانَ تَقْدِيمُهُ عَلَى الْمَسِيسِ شَرْطًا** اوکه د روژو په وطی باندې مقدم کول شرط وو **فَفِيمَا ذَهَبْنَا إِلَيْهِ تَقْدِيمُ الْبَعْضِ** نوکوم صورت چې موږ اختیارکړې دې.په دې کي په دې(وطی) باندې لږې روژې مقدمې دی **وَفِيمَا قُلْتُمْ تَأْخِيرُ الْكُلِّ عَنْهُ** اوکوم صورت چې تاسو بیان کړې دې.په هغې کي ټولې روژې د وطی نه روسته دی

**تشریح:-** په «وإن كان تقديمه» سره د سوال خواب دی.سوال دا دی.چه د روژې په وطی باندې مقدم کول شرط دی.اودا موجود شوې نه دی.نوځکه په دې صورت کي پکارده چې کفاره نه وه ادا شوې.

② خواب بیشکه په وطی باندې د روژو مقدم کول شرط دی.خوزمونږد مذهب مطابق دبعضې روژو په وطی باندې مقدم کول دی .اوستاسود بیان مطابق یعنی د استیناف په صورت کي به ټولې روژې د وطی نه روستوشی .اود وطی نه د بعضې روژو روستو کول د ټولود روستو کاوه نه اهون او آسان دی.

**وَلَهُمَا أَنَّ الشَّرْطَ فِي الصَّوْمِ أَنْ يَكُونَ قَبْلَ الْمَسِيسِ** اودامام ابوحنیفه اوامام محمد رحمهما الله دلیل دا دی.چه په روژوکي یوشرط دا دی.چه دا په وطی باندې مقدم وی **وَأَنْ يَكُونَ خَالِيًا عَنْهُ ضَرُورَةً بِالنَّصِّ** اوبل شرط دا دی.چه دوطی نه خالی وی .(دا) ضرورة د نص نه ثابت دی **وَهَذَا الشَّرْطُ يَنْعَدِمُ بِهِ** اودا شرط (د روژو په مینځ کي) دوطی کولود امله معدوم دی **فَيَسْتَأْنِفُ** نوځکه به د سرنه روژې نیسی . **وَإِنْ أَفْطَرَ مِنْهَا يَوْمًا بِعُذْرٍ أَوْ بِغَيْرِ عُذْرٍ اسْتَأْنَفَ** اوکه ده په دې دوو میاشتوکي یوه ورځ افطار اوکړلو..که په عذرسره وی اوکه بغیرعذر نودسرنه به ئې روژې نیسی **لِفَوَاتِ التَّتَابُعِ** .د تتابع د فوت کیدو په وجه **وَهُوَ قَادِرٌ عَلَيْهِ عَادَةً** حالانکه دې عادة په دې باندې قادر دی.

**تشریح:-** اود طرفینو رحمهما الله دلیل دا دی.چه یعنی ((مِنْ قَبْلِ أَنْ يَتَمَاسَّا)) د دوو شرطونوتقاضا کوی .یوه دا چې د روژې نه وړاندې وی .دویمه دا چې د وطی نه خالی وی .او دوهم شرط د اولنی شرط د لوازماتوځنی دی.ځکه چې تقدیم د صوم په وطی باندې مستلزم ده.چه روژه دې د وطی نه خالی وی .اود روژو په مینځ کي په وطی کولوسره دوهم شرط ختمیږي .نومشروط یعنی کفاره به هم ختمیږي .نوهرکله چې دا کفاره معدوم شوه .نوضروري ده.چه د سرنه روژې اونیسی .ځکه که دا کس د وطی نه وړاندې په کفاره ادا کولوباندې قادرنه دی.خود داسې روژې په نیولوپه یقین سره قادردی.کومه چې د وطی نه خالی وی.

② اوکه ده په دې دوو میاشتوکي د یوې روژې افطار اوکړلو.که په عذرسره وی .اوکه بغیرعذره وی .نودا کس به د سرنه دوباره روژې نیسی .ځکه چې تتابع اوبلا ناغه والې فوت شو.حالانکه دا کس په بلا ناغه روژې نیولوباندې قادر دی.

② یاد ساتئ؛ که دې کس بلا ناغه دوې (دوه) میاشتې روژې نیولې.اوبیا په آخری ورځ په غلام آزادولو قادر شو. نوکه د لمر پریوتو نه وړاندې وړاندې قادر شو.په ده دغلام آزادول واجب شو.اوروژې ئې نفل شوې.ځکه چې دا کس په بدل باندې د مقصود ادا کولونه وړاندې په اصل باندې قادر شو.اوکه د لمر پریوتونه روسته

قادر شو.نوهم روژې به په کفاره کي شمارلې شي .غلام ازادول به لازم نه وي .

## دغلام په کفاره کې صرف د روژو نیول

وَإِنْ ظَاهَرَ الْعَبْدُ اوکه غلام خپلې ښځې سره ظهار اوکړو لَمْ يُجْزِ فِي الْكَفَّارَةِ إِلَّا الصَّوْمُ نو( ده له) په کفاره کې ( هیڅ څیز) جائز نه دې.سوا د روژې نیولو نه لِأَنَّهُ لَا مِلْكَ لَهُ ځکه چې دغلام هیڅ ملك نشته فَلَمْ يَكُنْ مِنْ أَهْلِ التَّكْفِيرِ بِالْمَالِ نو په مال سره د کفارې ور کاوه د سره لیاقت نه لري وَإِنْ أَعْتَقَ الْمَوْلَى أَوْ أَطْعَمَ عَنْهُ اوکه د غلام د اړخه دده مولا رقبه آزاده کړله.یا ئې دده د اړخه خوراك ورکړو لَمْ يُجْزِهِ نو بیا هم کافی نه ده لِأَنَّهُ لَيْسَ مِنْ أَهْلِ الْمِلْكِ ځکه چې دا غلام د مالك کیدو اهل نه دې فَلَا يَصِيرُ مَالِكًا بِتَمْلِيكِهِ نود مولا په مالك کاوه سره به نه مالك کیږي .

**تشریح:-** که غلام دخپلې ښځې نه ظهار اوکړلو.نودده کفاره به صرف په روژو سره ادا کیږي .ځکه چې دغلام په ملك کي څه شی نه وی .ځکه دې په مال سره د کفارۀ ادا کولواهل نه دې.اوکه دده مولی دده د اړخه غلام آزاد کړلو.یا ئې ډوډۍ ورکړله.نوهم به کافی نه وی .ځکه چې دا غلام دمالك کیدو اهل نه دې. نو دمالك په مالك جوړولوسره به مالك نه جوړیږي .

🟊دا خبره دې ښکاره وی .که مولی خپل غلام د کفاراتود روژو نیولونه منع کوی .نودې ئې منع کولې شی . سوا د ظهارد کفاره نه ځکه چې د ظهارد کفارې سره د ښځې حق متعلق دې.(فتح القدیر)

## د روژو نیولونه عاجزکیدل

وَإِذَا لَمْ يَسْتَطِعِ الْمُظَاهِرُ الصِّيَامَ اوکه ظهارکونکی ته د روژې نیولو توان نه وی أَطْعَمَ سِتِّينَ مِسْكِينًا نو شپیتو مسکینانو ته دې خوراك ورکړی لِقَوْلِهِ تَعَالَى ځکه الله تعالی فرمائیلی دی فَمَنْ لَمْ يَسْتَطِعْ فَإِطْعَامُ سِتِّينَ مِسْكِينًا چې کوم کس د روژې نیولو توان نه لري .نو شپیتو مسکینانو ته خوراك ورکول ( دده کفاره ده)

**تشریح:-** مسئله دا ده.که ظهارکونکې د روژې توان نه لری .نودې ته پکار دی .چه شپیتومسکینانوته ډوډۍ ورکړی .دلیل دالله تعالی قول دی ((فَمَنْ لَمْ يَسْتَطِعْ فَإِطْعَامُ سِتِّينَ مِسْكِينًا))

وَيُطْعِمُ كُلَّ مِسْكِينٍ نِصْفَ صَاعٍ مِنْ بُرٍّ أَوْ صَاعًا مِنْ تَمْرٍ أَوْ شَعِيرٍ أَوْ قِيمَةَ ذَلِكَ اوهر مسکین ته نیم صاع د غنمو یا یو صاع د کجورو یا اوربشو یا ددې قیمت ورکړی

**حل اللغة:** ① نصف: نیم ② تمر: خرما ③ بر: غنم ④ شعیر: اوربشې]

**تشریح:-** اود ډوډۍ ورکولوصورت دا دې.چه هرمسکین ته دې نیم صاع غنم،یا وړه یا ستوان یا یوصاع قجورې یا جوار،اویا ددې قیمت ورکړی .خودا یادلرئ.چه په قیمت کي صرف هغه شیان (څیزونه ) ورکولې شی .کوم چې منصوص علیه نه وی . مثلاً یوکلو وریژې دنیم صاع غنمود قیمت سره برابردی .نودنیم صاع غنموپه قیمت کي یوکلووریژې ورکولې شی .

🟊اوپه کوموڅیزونوچه نص وارد شوې دې.دهغې قیمت ادا کول جائز نه دی .چه دهغې مقدار په قیمت کي کم وی .اګرچه په مقدارکي زیات یا دهغې برابر ولې نه وی .مثلاً یوکس نیم صاع ښه قجورې ورکړې.حالانکه دا قجورې د نصف صاع غنمود قیمت برابروی .یا زیاتې وی .نوجائزنه دی .ځکه چې نص په یوصاع غنمو باندې وارد شوې دې.

🟊دغه ډول که دنصف صاع غنمونه ئې کم ورکړل.په داسې حال کي چې یوصاع قجورې یا یوصاع جوارو ته رسیدې شی .نودا هم جائزنه ده.ځکه چې په نص کي دنصف صاع غنمو صراحت موجود دې.نوضابطه دا شوه.چه د طعام یومنصوص علیه جنس دبل منصوص علیه جنس بدل واقع کیداې نشی .اګرچه په قیمت کي زیات ولې نه وی . (الکفایه،عنایه)



لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ فِي حَدِيثِ أَوْسِ بْنِ الصَّامِتِ وَسَهْلِ بْنِ صَخْرٍ ځکه چې نبی کریمﷺ په حدیث د اوس بن الصامت او حدیث د سهل بن صخرکي اوفرمائیل لِكُلِّ مِسْكِينٍ نِصْفُ صَاعٍ مِنْ بُرٍّ(١) چې د هرمسکین لپاره د غنمو نیم صاع دې

**تشریح:-** صاحب دهدایه رحمه الله په حواله کي داوس بن صامت اوسهل بن صخر(رض) دحدیث حواله ورکړې ده.نوموړي ستاسوپه معلوماتوکي د زیادت لپاره د اوس بن صامت رضي الله عنه پوره حدیث نقل کوو. خوله بنت ثعلبه رضي الله عنها فرمائی .چه زه د اوس بن صامت په نکاح کي ووم.اوهغه دخپل بوډاتوب په وجه سخت مزاجه شوې وو.نوما هغه سره په داسې کارکي بحث اوکړلو.دکوم چې هغه ماته حکم کړې وو.نوهغه ماته «انت علی کظهر امی» اووئیل.اوبیا اووتل،په خپلوخپلوانوکي کیناستلو.بیا واپس راغلو.ما سره کیناستلو.اوزما د راضی کولو کوښښ ئې کولو.ما ورته اووئیل.زما دې په هغه ذات قسم وی .چه دخوله روح دې.ماته ګوتې مه راوړه.اوچه څه په خوله راتله.هغه مې ورته اووئیل.تردې چې په دې اړه کې الله اودهغه پیغمبرﷺ څه فیصله اوکړی .نوهغه په ما باندې راپریوتلو.نوما هغه داسې لرې کړلو.لکه څنګه چې بوډا سړې لرې کولې شی .اوزه اووتم خپلوګاونډیانوکره لاړم.اوبیا ماجامې واغوستې.رسول اللهﷺ ته ورغلم.اودا پوره واقعه مې ورته بیان کړه.نبیﷺ راته اوفرمائیل.ستا خاوند دې.اوستاد اکا خوئې دې.غریب بوډا شوې دې.ته هغه سره ښه سلوك کوه.نوما دهغه د سخت مزاجۍ ګیله الله تعالی ته اوکړله.نوپه رسول اللهﷺ باندې هغه حالت پیل شو.کوم چې به په هغوی باندې د وحی په حالت کي پیل کیدلو.(یعنی په نبیﷺ باندې وحی پیل شوه) کله چې ترې دغه حالت ختم شو.نو وې فرمائیل.الله تعالی ستا اوستا د خاوند په اړه کي یوتفصیلی بیان راولیږلو.اوبیا نبیﷺ دا آیاتونه بیان کړل.((قَدْ سَمِعَ اللَّهُ قَوْلَ الَّتِي تُجَادِلُكَ فِي زَوْجِهَا وَتَشْتَكِي إِلَى اللَّهِ))

بیا نبیﷺ اوفرمائیل.هغه ته د یوې رقبه آزادولوحکم اوکړه.ماورته عرض اوکړلوهغه د دې توان نه لری .نوهغوی راته اوفرمائیل.چه ښه دوې [دوه] میاشتې دې بلا ناغه روژې اونیسی .ماورته عرض اوکړلو.چه هغه ددې توان هم نه لری .بیا نبیﷺ اوفرمائیل.ښه هغه ته حکم اوکړله.چه شپیتو مسکینانوته ډوډۍ ورکړی .ما ورته عرض اوکړلو.یارسول اللهﷺ دهغه سره څه هم نشته.(چه دا ئې واوریدلو) نونبیﷺ اوفرمائیل.زه به هغه سره د یو عرق کومك اوکړم.ماورته اووئیل.زه به ورسره هم د یوعرق کومك اوکړم.نبیﷺ ووئیل ورکره ورته،اودهغې د خیرات کولوحکم ئې ورکړلو.(عنایه)

🟊په حدیث کي لفظ دعرق راغلې دې.امام ابوداود روایت کړې دې.چه په یو عرق کي شپیته صاع وی .اودبعضې حضراتورائې ده.چه عرق داسې لوښې دې.چه په هغې کي د دیرشو صاعوګنجائش وی .امام ابوداود رحمه الله فرمائیلی دی .چه دا قول زیات صحیح دې.اوعقل هم ددې تقاضا کوی .چه دا زیات صحیح دې.ځکه که چرته عرق شپیته صاع وو.نوبیا د دوهم عرق څه اړتیا وو.په اولنی به اړتیا پوره شوې وو.والله اعلم بالصواب.

🟊دوهم حدیث دحضرت سهل بن صخر رضي الله عنه په روایت سره هم ددې حدیث په معنی دې.خودا د صاحب هدایه رحمه الله سهوه ده.ځکه چې سهل بن صخرلیثی رضي الله عنه د صحابه کرامو رضي الله عنهم نه دې.خودهغوی نه د ظهارپه اړه کي څه روایت نشته.اوپه مبسوط کي سلمه بن صخر رضي الله عنه ذکردې.بهرحال ددې احادیثونه دا معلومیږي .که دظهارکونکی د رقبه په آزادولوقدرت نه وی .نودوې [دوه] میاشتې به روژې نیسی .اوکه ددې توان ئې نه وی .نوشپیتو مسکینانوته به ډوډۍ ورکوی .

١) قال الزيلعي رحمه الله هكذا وقع فى الهداية وصوابه وسلمة بن صخر والحديث غريب وعندالطبرانى فى معجمه في حديث أوس بن الصامت رضي الله عنه قال فأطعم ستين مسكيناً ثلاثين صاعاً قال لا أملک ذلک إلا أن تعينني فأعانه النبى بخمسة عشرصاعا وأعانه الناس حتى بلغ (نصب الراية ٣٥٨\٣)_

وَلِأَنَّ الْمُعْتَبَرَ دَفْعُ حَاجَةِ الْيَوْمِ لِكُلِّ مِسْكِيْنٍ او ځکه چې معتبر دادی .چه د هرمسکین د یوې ورځې حاجت لرې کړی فَيُعْتَبَرُ بِصَدَقَةِ الْفِطْرِ نو په صدقة الفطر به قیاس کولای شی

تشریح:- دوهم عقلي دلیل دا دې.چه معتبردهرمسکین د یوې ورځې حاجت پوره کول دی .نودا په مقدارکې په صدقة الفطرباندې قیاس کولې شی .خود لږ توپیر سره،هغه دا چې په ظهارکې عدد اومقدار دواړه معتبردی .یعنی مسکین ته به دنصف صاع نه کم نشی ورکولې.اونه به ورته زیات ورکولې شی .ځکه چې دشپېتوعدد ضروری دې.اوپه صدقة الفطرکې مقدارمعتبردې عدد نه دې.نویوفطرانه څومسکینانوته اوڅوفطرانه یومسکین ته ورکولې شی .

وَقَوْلُهُ أَوْ قِيْمَةُ ذٰلِكَ مَذْهَبُنَا اود ماتن قول «قیمة ذالك» زموږ مذهب دې وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ فِي الزَّكَاةِ اودا په كتاب الزكاة كې ذكر شوی دی .

تشریح:صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی .چه دقدوری رحمه الله قول چې «قیمة ذالك» داحنافو رحمهم الله مذهب دې.اوموږ دا په كتاب الزكاة كې په تفصیل سره بیان کړې دې.

## په خوراك وركولوكې څوك وكيل جوړول

وَإِنْ أَمَرَ غَيْرَهُ أَنْ يُطْعِمَ عَنْهُ مِنْ ظِهَارِهِ اوكه ظهاركونكی دوهم كس ته حكم اوكړو.چه زما د ظهار په كفاره كې زما د اړخه خوراك وركړه فَفَعَلَ أَجْزَأَهُ نو هغه وركړو.نو كفاره اداكيږی لِأَنَّهُ اسْتِقْرَاضٌ مَعْنًى ځكه چې دا د پور اخستلو په معنی كې دی وَالْفَقِيْرُ قَابِضٌ لَهُ أَوَّلًا ثُمَّ لِنَفْسِهِ او فقيرمخكې دده لپاره قبضه كړله.بيا ئې د خپل ځان لپاره ( قبضه اوكړله) فَتَحَقَّقَ تَمَلُّكُهُ ثُمَّ تَمْلِيْكُهُ نو پخپل ملك كې اخستل، بيا فقير ته وركول متحقق شو.

حل اللغة* ① استقراض: پور اخستل ② تمليك: بل څوك مالك جوړول]

تشریح:- مسئله دا ده.كه ظهاركونكی بل كس ته حكم اوكړلو.چه زما د اړخه كفاره د ظهار وركړه.اوهغه وركړله.نودا كافي شوه.ځكه چې دظهاركونكی دخپل اړخ نه د خوراك وركولوحكم كول معنی دهغه نه پور غوښتل دی .اوپاتې شوفقيرنوهغه اول دظهاركونكی د اړخه نائب جوړيږی .اودهغه لپاره قبض كوی .اوبيا دخپل ځان لپاره قبض كوی .نود ظهاركونكی اول په خپله مالك جوړيدل اوبيا فقيرمالك جوړول متحقق شو.

## دوې [دوه] وخته مسكينانوته روټۍ وركولوسره دكفارې ادا كيدل

فَإِنْ غَدَّاهُمْ نوكه ( ظهاركونكی ) شپېتو مسكينانو ته په صباكې خوراك وركړو وَعَشَّاهُمْ بيا ئې د ماښام خوراك وركړو جَازَ قَلِيْلًا كَانَ مَا أَكَلُوْا أَوْ كَثِيْرًا نو جائز دې.كه دوی كم خوړلې وی .او كه زيات ئې خوړلې وی

تشریح:- مسئله دا ده.كه ظهاركونكی شپېتومسكينانوته دوې [دوه] وخته په مړه نس ډوډۍ وركړله.نوكفاره دظهاربه ادا شی .برابره ده.كه هغوی كم خوراك كړې وی .اوكه زيات،اوكه دوې [دوه] ورځې ئې يووخت كول دی .اودا د سهار اوماښام په ډوډۍ وركولوسره حاصليږی .ځكه چې معتبرد يوې ورځې اړتيا پوره دامام ابوحنيفه رحمه الله نه دا هم نقل دی .كه شپېتو مسكينانوته ئې د سهار ډوډۍ وركړله.اونوروشپېتو ته ئې ماښام ډوډۍ وركړله.نوپه دې باندې هم كفاره نه ادا كيږی .

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رحمه الله لَا يُجْزِئُهُ إِلَّا التَّمْلِيْكُ اعْتِبَارًا بِالزَّكَاةِ وَصَدَقَةِ الْفِطْرِ او امام شافعی رحمه الله فرمائیلی دی .چه دا به كافي نه وی .مگر مالك كول په زكاة او صدقة الفطر باندې په قياس كاوه سره وَهٰذَا لِأَنَّ التَّمْلِيْكَ أَدْفَعُ لِلْحَاجَةِ



اودا ځكه چې مالك كول اړتيا زيات لرې كوی فَلَا يَنُوْبُ مَنَابَهُ الْإِبَاحَةُ نو مباح كول به ددې قائم مقام نه وی

تشریح:- امام شافعی رحمه الله فرمائی .چه په كفاره كې د سهار اوماښام ډوډۍ وركول كافي نه دی .بلكه مالك جوړول ضروری دی .يعنی چې دا ورته اووائی .چه دا ډوډۍ ما ستا په ملكيت كې كړه.خوښه دې ده.كه خورې ئې اوكه اوړې ئې.لكه څنګه چې په زكاة اوصدقة الفطركې دی .لكه چې امام شافعی رحمه الله كفاره په زكاة اوصدقة الفطرباندې قياس كړې ده.اود اباحت داعدم جواز ددې امله دې.چه په مالك جوړول سره دفقيرحاجت په ښه طريقه پوره كيږی .نوخالی خوراك پرې كول ددې قائم مقام نشی جوړيدې.

وَلَنَا أَنَّ الْمَنْصُوْصَ عَلَيْهِ هُوَ الْإِطْعَامُ او زموږ دليل دادې.چه په نص د قرآن كې لفظ د اطعام ( ذكر) دې وَهُوَ حَقِيْقَةٌ فِي التَّمْكِيْنِ مِنَ الطُّعْمِ اود اطعام حقيقی معنی ده.په خوراك باندې قابو وركول وَفِي الْإِبَاحَةِ ذٰلِكَ كَمَا فِي التَّمْلِيْكِ او په مباح كولوكې دا خبره ( حاصل) ده.لكه څنګه چې په مالك كاوه كې ( حاصل) ده

حل اللغة* ① التمكين: قدرت وركول ② الاطعام: خوراك وركول]

تشریح:- اوزموږ دليل دا دې.چه په قرآنی نص كې لفظ د اطعام طعام راغلې دې.اواطعام طعام حقيقی معنی په خوراك باندې قدرت وركول دی .اودا خبره د ډوډۍ په اباحت باندې داسې حاصليږی .لكه څنګه چې په مالك جوړولوسره حاصليږی .ځكه چې مالك جوړول په منصوص عليه باندې مشتمل دې.ځكه چې هركله فقيرمالك شو.نودا به خوری .اويا به ئې په بل اړتيا كې لګوی .نوځكه مالك جوړول هم د منصوص عليه قائم مقام دی .

أَمَّا الْوَاجِبُ فِي الزَّكَاةِ الْإِيْتَاءُ او پاتې شو زكاة،نو په دې كې وركول فرض دی وَفِي صَدَقَةِ الْفِطْرِ الْأَدَاءُ اوپه صدقة الفطر كې اداكول واجب دی وَهُمَا لِلتَّمْلِيْكِ حَقِيْقَةً ( او وركول او اداكول) ددې دواړو حقيقی معنی مالك كول دی

تشریح:- اوپاتې شوزكاة اوصدقة الفطرنوكفاره په هغې باندې قياس كول صحيح نه دی .ځكه چې په زكاة كې ايتاء (وركول) فرض دی .ځكه چې دالله تعالى ارشاد دې.«أتوالزكاة» يعنی زكاة وركوئ.اوپه صدقة الفطر كې ادا كول واجب دی .ځكه چې نبی ﷺ فرمائیلی دی .«أدوا عمن تمونون» يعنی دچا چې تاسوكفالت كوئ.دهغوی داړخه ادا كړئ.اوددې دواړو الفاظو حقيقی معنی مالك جوړول دی .صرف قدرت وركول نه دې.

## په مسكينانوكې دماشوم حكم

وَلَوْ كَانَ فِيْمَنْ عَشَّاهُمْ صَبِيٌّ فَطِيْمٌ او كه په دې خلګ وكې چاته چې ئې د ماښام خوراك وركړې دې.د پيو خوړونكې ماشوم وی لَا يُجْزِئُهُ نو كفاره به نه اداكيږی

حل اللغة* ① صبی: ماشوم ② فطيم: شيدې څكونكې ]

تشریح:- مسئله دا ده.كومو شپېتومسكينانوته چې ئې دشپې ډوډۍ وركړې وی .كه په هغوی كې د پيو ماشوم وی .نوكفاره نه ادا كيږی .

لِأَنَّهُ لَا يَسْتَوْفِي كَامِلًا ځكه چې دې پوره خوراك نشی خوړلې

تشریح:-دليل دا دې.چه دپيوماشوم پوره خوراك نه كوی .بلكه دهغه څه خوراك كوی .اوڅه شيدې څكی .نوپه ده باندې پوره خوړل نه صادقيږی .

وَلَا بُدَّ مِنَ الْإِدَامِ فِي خُبْزِ الشَّعِيْرِ لِيُمْكِنَهُ الْاِسْتِيْفَاءُ إِلَى الشِّبَعِ اود اوربشو ډوډۍ سره.سالن ( تركاری ) وركول ضروری دی ،چه په مړه ګيډه خوړل ممكن وی وَفِي خُبْزِ الْحِنْطَةِ لَا يُشْتَرَطُ الْإِدَامُ اود غنمو ډوډۍ سره سالن وركول شرط نه دی .

حل اللغة* ① الادام: خوروواه ② خبز: ډوډۍ ③ الاستيفاء: پوره كول حاصلول ④ الشبع: مړيدل]

تشریح:- فرماني .که ډوډۍ د جوارو وي .نودهغي سره د ترکارۍ وجود ضروري دي.چه په مره نس نې اوخوري .اوکه د اوبشو ډوډۍ وي .نوددې سره ترکاري شرط نه دي.ځکه چې د اوربشوډوډۍ د ترکارۍ نه بغیرهم خوړلې شي .

## یومسکین ته شپیته ورځې روټۍ ورکول

وَإِنْ أَطْعَمَ مِسْكِينًا وَاحِدًا سِتِّينَ يَوْمًا اوکه ده یو مسکین ته شپیتو ورځو پورې خوراك ورکړو أَجْزَأَهُ نودا به کافي نه وي وَإِنْ أَعْطَاهُ فِي يَوْمٍ وَاحِدٍ لَمْ يُجْزِهِ إِلَّا عَنْ يَوْمِهِ اوکه ده په یوه ورځ کې ورکړو.نو صرف د یوې ورځې ( کفارې) لپاره به کافي وي

تشریح:- صورت د مسئلې دا دې.که یومسکین ته نې شپیته ورځې ډوډۍ ورکړله.نوکفاره ادا کیږي .اوکه په یوه ورځ نې ورکړله.نوصرف دیوې ورځې لپاره کافي کیږي .

لِأَنَّ الْمَقْصُودَ سَدُّ خَلَّةِ الْمُحْتَاجِ ځکه مقصود دادې.چه د محتاج حاجت لرې شي وَالْحَاجَةُ تَتَجَدَّدُ فِي كُلِّ يَوْمٍ او حاجت روزانه نوې پیدا کیږي فَالدَّفْعُ إِلَيْهِ فِي الْيَوْمِ الثَّانِي كَالدَّفْعِ إِلَى غَيْرِهِ نوهم دې مسکین ته دویمه ورځ ورکول دده نه علاوه بل کس ته د ور کاوه مثل شو وَهَذَا فِي الْإِبَاحَةِ مِنْ غَيْرِ خِلَافٍ اودا حکم په اباحت کې بلا اختلاف جائز دي

حل اللغة* ① سد: بندول ② خلة: حاجت ③ تتجدد: نوې کیږي ]

تشریح:- دلیل دا دی.چه دکفارۀ نه مقصود دحاجت لرې کول دی .اوحاجت هره ورځ نوې پیدا کیږي .نوپه بله ورځ هم دغه مسکین ته ورکول داسې شو.لکه چې هم دې هم مسکین ته نې ورکړله.نوشپیته ورځې یومسکین ته خوراك ورکول د شپیتو مسکینانوپشان شوه.نوځکه په دې صورت کښې کفاره ادا کیږي .

په «هذا فی الإباحة» سره دمسئلې دوهم صورت بیانوي .یعنی که یومسکین ته نې په ورځ کې په طریقه د اباحت شپیته خل ډوډۍ ورکړله.نودا په اتفاق سره جائز نه دی .ځکه چې واجب خوپه شپیتو مسکینانو په جلا جلا ورځ کې خوراك کول دی .اوهغه موجود نشو.نه حقیقتاً اونه حکماً حقیقتاً خو ددې امله موجود نشو.چه هغه یومسکین دې.اوحکماً ددې امله چې یوسړي ته په یوه ورځ کې شپیته خله د ډوډۍ حاجت نه وي .

وَأَمَّا التَّمْلِيكُ مِنْ مِسْكِينٍ وَاحِدٍ فِي يَوْمٍ وَاحِدٍ بِدَفَعَاتٍ او پاتې شو یو مسکین ته په یوه ورځ کې ( شپیته) خله ورکول فَقَدْ قِيلَ لَا يُجْزِئُهُ نود بعض قول دې.چه جائز نه دې وَقَدْ قِيلَ يُجْزِئُهُ اود بضع قول دې.چه جائز دې لِأَنَّ الْحَاجَةَ إِلَى التَّمْلِيكِ تَتَجَدَّدُ فِي يَوْمٍ وَاحِدٍ ځکه چې حاجت د یوڅیز مالك جوړولو ته په یوه ورځ کې نوې نوې پیدا کیږي

تشریح:- اوپاتې شوه دا خبره چې یومسکین په یوه ورځ کې شپیته خله د کفاره د مقدارمالك جوړول نوپه دې اړه کې اختلاف دې.نوبعضې حضراتوفرمائیلی دی .چه دا صورت هم ناجائزدې.ځکه چې معتبرحاجت لرې کول دی .اودبعضو رائې ده.چه جائزدی .ځکه چې د یوڅیزمالك جوړولو اړتیا په یوه ورځ کې نوې نوې پیدا کیداې شي .

بِخِلَافِ مَا إِذَا دَفَعَ بِدَفْعَةٍ وَاحِدَةٍ ددې په خلاف که یو مسکین ته په یوځل ورکړي لِأَنَّ التَّفْرِيقَ وَاجِبٌ بِالنَّصِّ ځکه چې جلا جلا ورکول په نص د قرآن سره واجب دی .

حل اللغة* ① التفریق: جلا جلا کول ]

تشریح:-ددې په خلاف که مسکین یوځل دټولومالك جوړ کړي .نودا په اتفاق سره جائز نه ده.ځکه چې بیل بیل ته ورکول په نص قرآنی سره واجب ده.ځکه چې ارشاد ((فَإِطْعَامُ سِتِّينَ مِسْكِينًا)) دې.والله اعلم.



## د روټۍ ورکولوپه مینځ کې ښځې سره جماع کول

وَإِنْ قَرُبَ الَّتِي ظَاهَرَ مِنْهَا فِي خِلَالِ الْإِطْعَامِ اوکه د خوراك ور کاوه په مینځ کې نې دې ښځې سره وطی اوکړله.دکوم سره نې چې ظهار کړې وو لَمْ يَسْتَأْنِفْ نو استیناف به نه کوي

تشریح:- مسئله دا ده.که ظهارکونکی کس د ډوډۍ ورکولوپه مینځ کې دهغه ښځې سره جماع اوکړله. د کومې نه چې نې ظهارکړې وي .نود سرنه د ډوډۍ ورکولو اړتیا نشته.

لِأَنَّهُ تَعَالَى مَا شَرَطَ فِي الْإِطْعَامِ أَنْ يَكُونَ قَبْلَ الْمَسِيسِ ځکه چې الله تعالی د خوراك په ور کاوه کې دا شرط لګولې نه دې.چه د وطی نه وړاندې وي إِلَّا أَنَّهُ يُمْنَعُ مِنَ الْمَسِيسِ قَبْلَهُ مګر دا چې دې به دوطی کاوه نه منع کولې شي .مخ کې د خوراك ور کاوه نه لِأَنَّهُ رُبَّمَا يَقْدِرُ عَلَى الْإِعْتَاقِ أَوِ الصَّوْمِ ځکه چې ډیرکرته په آزادولو، او په روژه نیولو باندې قادر کیږي فَيَقَعَانِ بَعْدَ الْمَسِيسِ نودا دواړه به د وطی نه روسته واقع شي

تشریح:-دلیل دا دې.چه الله تعالی دا شرط بیان کړې دې.چه خوراك ورکول د وطی نه وړاندې وي .لکه څنګه چې په عتاق اوصوم کې دا شرط بیان شوې دې.البته دومره خبره ده.چه دا کس به د ډوډۍ ورکولونه وړاندې د وطی کولونه منع کولې شي .ځکه چې کیداې شي .دا کس د ډوډۍ ورکولوپوره کولونه وړاندې د غلام په آزادولویا په روژو نیولوقادر شي .نوپه داسې صورت کې که ده د ډوډۍ ورکولوپه مینځ کې وطی کړې وي .نود اعتاق اوصوم د وطی نه روسته واقع کیدل راځي .حالانکه دا خبره په نص قرآني سره ممنوع ده.ددې خبرهم په دې کې دې.چه د خوراك ورکولونه وړاندې وطی نه کوي .

وَالْمَنْعُ لِمَعْنًى فِي غَيْرِهِ لَا يُعْدِمُ الْمَشْرُوعِيَّةَ فِي نَفْسِهِ اود معنی «فی غیره» په وجه ممانعت، مشروعیت فی ذاته نه معدوم کوي .

تشریح:- دا خبره دې یاده وي .چه د ډوډۍ ورکولونه وړاندې وطی کول ممنوع لغیره دی .اوممنوع لغیره د مشروع لذاته سره منافی نه وي .ددې امله د ډوډۍ ورکولونه وړاندې یا په مینځ کې وطی کول د طعام د فساد مقتضی نه دې.اود داسې دې.لکه په وخت د اذان کې خرڅول اواخستل ممنوع دی اوپه مکروه وختونوکې لمونځ مکروه دې.

## د دوو کفاره ظهارنه صرف شپیتومسکینانوته روټۍ ورکول

وَإِذَا أَطْعَمَ عَنْ ظِهَارَيْنِ سِتِّينَ مِسْكِينًا كُلَّ مِسْكِينٍ صَاعًا مِنْ بُرٍّ لَمْ يُجْزِهِ اوکه ده ( د خپلو دوې [دوه] ظهاروخوراك شپیتو مسکینانو ته ورکړو.( په دې طریقه) چې هرمسکین ته نې یو صاع غنم ورکړل إِلَّا عَنْ وَاحِدٍ مِنْهُمَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رحمهما الله (١) نو د امام ابوحنیفه او ابویوسف رحمهما الله په نیز به په دواړو ظهارونوکې صرف د یو ظهار نه اداکیږي

تشریح:- مسئله دا ده.چه ظهارکونکی په خپلو دوو ظهاروکې شپیتومسکینانوته ډوډۍ ورکړله.په دې طریقه چې هرمسکین ته نې یوصاع اوربشې ورکړې.① نوپه دې صورت کې د شیخینو رحمهما الله په نیزحکم دا دې.چه یوه کفاره ادا کیږي

وَقَالَ مُحَمَّدٌ رحمه الله يُجْزِئُهُ عَنْهُمَا او د امام محمد رحمه الله په نیز به د دواړو ظهارونو ( کفاره) ادا شي وَإِنْ أَطْعَمَ ذَلِكَ عَنْ إِفْطَارٍ وَظِهَارٍ وکه ده دا د افطار او ظهار په کفاره کې ورکړه أَجْزَأَهُ عَنْهُمَا نو( بالاتفاق) به د دواړو نه اداکیږي

---

(١) القول الراجح هو قول الشیخین رحمهما الله كذا فی ردالمحتار(٦٣٤\٢) والعنایة (١٠٨\٤) والهندیة (٥١٤\١) والبحرالرائق (١١٠\٤) نقلاً عن القول الراجح (٣٦٠\١)-

لِمُحَمَّدٍ أَنَّ الْمُؤَدِّيَ وَفَاءٌ بِهِمَا د امام محمد رحمه الله دلیل دادي.چه کوم خوراك ده اداکړو.دا د دواړو ظهارونو لپاره کافي دي وَالْمَصْرُوفُ إِلَيْهِ مَحَلٌّ لَهُمَا اوکومو خلګو ته ئې چې ورکړو.هم دا ددې محل دي فَيَقَعُ عَنْهُمَا كَمَا لَوِ اخْتَلَفَ السَّبَبُ نود دواړو ظهارونو نه به ادا شي .لکه که سبب مختلف شو أَوْ فَرَّقَ فِي الدَّفْعِ یا ئې جلا جلا ورکړې وي .

تشریح:- اوامام محمد رحمه الله فرمائي .چه دواړه کفاره ادا کیږي .

اوکه یوکس په کفاره افطار او کفاره ظهارکي شپیتو مسکینانوته هم دومره مقداراوربشې ورکړلې. نو په اتفاق سره دواړه کفارهٔ ادا کیږي .ځکه چې په هریوظهارکي دهریوم مسکین لپاره نیم صاع واجبیږي .نوهریومسکین ته یویوصاع غنم ورکولوکي یقیناً د دواړو کفاروکفایت کیداې شي .اوچاته چې ورکولې شي .هغه د دواړو کفارو محل هم دې.ځکه چې فقیرپه دواړوکي یوحق واخلي .نود مصرف نه خارجیږي نه،نودواړه کفاره ادا کیږي .

که دکفارهٔ سبب مختلف وي .مثلاً یوه کفاره د افطار وي .اوبله کفاره د ظهاروي .اوشپیتومسکینانوته ئې یویو صاع غنم ورکړل.نو دواړه کفاره ادا کیږي .اویا ئې متفرق طورورکړي .مثلاً یومسکین ته په یوه کفاره کي نصف صاع ورکړي .اوبیا نصف آخرپه بله کفاره کي ورکړي .نوپه اتفاق سره داجائزده.

وَلَهُمَا أَنَّ النِّيَّةَ فِي الْجِنْسِ الْوَاحِدِ لَغْوٌ اود شیخینو رحمهما الله دلیل دادې.چه په یوجنس کي نیت لغو وي . وَفِي الْجِنْسَيْنِ مُعْتَبَرَةٌ او په دوې [دوه] جنسونو کي معتبر وي ، وَإِذَا لَغَتِ النِّيَّةُ وَالْمُؤَدِّي يَصْلُحُ كَفَّارَةً وَاحِدَةً او هرکله چې نیت لغو شو.حالانکه چې څه ئې اداکړي دي .هغه د یوې کفارې صلاحیت لري . لِأَنَّ نِصْفَ الصَّاعِ أَدْنَى الْمَقَادِيرِ ځکه چې نیم صاع غنم د ټولو نه کم مقدار دې فَيَمْنَعُ النُّقْصَانَ دُونَ الزِّيَادَةِ نود ( نصف صاع نه) کمولو څخه به منع کولې شي .نه په زیاتولوکي .منع نشي کولې فَيَقَعُ عَنْهَا كَمَا إِذَا نَوَى أَصْلَ الْكَفَّارَةِ نود یوې کفارې څخه به واقع کیږي .لکه چې کله ده د اصل کفارې نیت کړې وي

حل اللغة ① المقادیر:جمع د مقدار،اندازه ،پیمانه ]

تشریح:-اوشیخینو رحمهما الله دلیل دا دې.چه په یوجنس کي به نیت لغو وي .ځکه چې په اجناسو مختلفوٴ کي نیت د امتیاز لپاره وي .اوپه یوجنس کي دا خبره نشي کیدې.نوځکه به په یوجنس کي نیت لغو وي .اوپه دوو جنسونوکي به نیت معتبر وي .

مثلاً په یوکس باندې د رمضان د څو روژو قضا پاته وه.اوده د قضا روژو ادا کولونیت اوکړلو.نوکافي کیږي .اوپه ده باندې د تعین نیت واجب نه دې.ځکه چې د ټولوروژو جنس یودې.اوکه په یوکس باندې د رمضان د روژو قضاء اود نذر روژې وي .نودا کس د نیت دتعین محتاج دې.ځکه چې د دواړو روژو جنس مختلف دې.

نوهرکله چې په ذکرشوې مسئله کي د کفارهٔ ورکونکي نیت لغوشو.اوکوم مقدار چې ورکړې شو.هغه د یوې کفارهٔ صلاحیت هم لري .ځکه چې نیم صاع غنم د ټولونه کم مقداردې.اومقدارمانع د نقصان وي .خود زیادت لپاره مانع نه وي .حاصل دا چې یومسکین ته دې د نصف صاع نه کم نشي ورکولې.البته زیاتي ورته ورکولې شي .نوپه دې ادا کولوسره به یوه کفاره ادا شي .لکه څنګه چې دا کس د اصل کفارهٔ نیت اوکړي .نوپه اتفاق سره یوه کفاره ادا کیږي .نوداسې به دلته هم وي .

بِخِلَافِ مَا إِذَا فَرَّقَ فِي الدَّفْعِ په خلاف ددې چې کله ئې جلا جلا ورکړې وي لِأَنَّهُ فِي الدَّفْعَةِ الثَّانِيَةِ فِي حُكْمِ مِسْكِينٍ آخَرَ ځکه چې په دوباره ورکولوکي ( دا فقیر) د دوهم فقیر په حکم کي دې.

تشریح:-ددې په خلاف که دې کس متفرق طور دا ورکړل.مثلا په یوه کفاره کي یومسکین ته نصف صاع ورکړي .بیاهم دغه مسکین ته په بله کفاره کي نصف صاع ورکړي .نودواړه کفارهٔ ادا کیږي .ځکه چې په دوهم ځل ورکول د دوهم مسکین به حکم کي دي .



## ددوو ظهارونه دوې [دوه] غلامان بغیردتعین نه آزادول

وَمَنْ وَجَبَتْ عَلَيْهِ كَفَّارَتَا ظِهَارٍ اوپه کوم کس چې د ظهار دوې [دوه] کفارې واجب وي فَأَعْتَقَ رَقَبَتَيْنِ نوده دوې [دوه] غلامان آزاد کړل لَا يَنْوِي عَنْ أَحَدِهِمَا بِعَيْنِهَا حالانکه په دې دواړو کي ئې د یو متعین نیت نه دې کړې جَازَ عَنْهُمَا نودا د دواړو د اړخه جائز دي وَكَذَا إِذَا صَامَ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ اوهم دغه شان چې کله ئې څلور میاشتې روژې اونیولې أَوْ أَطْعَمَ مِائَةً وَعِشْرِينَ مِسْكِينًا جَازَ یا ئې شپږشلو مسکینانو ته خوراك ورکړو.نوجائز دي لِأَنَّ الْجِنْسَ مُتَّحِدٌ فَلَا حَاجَةَ إِلَى نِيَّةٍ مُعَيَّنَةٍ ځکه چې جنس واحد دې.نود معین کاوه د نیت حاجت نشته.

تشریح:- صورت د مسئلې اودلیل ښکاره دې.

## د دووکفارونه یوغلام آزادول

وَإِنْ أَعْتَقَ عَنْهُمَا رَقَبَةً وَاحِدَةً أَوْ صَامَ شَهْرَيْنِ اوکه ده د دوې [دوه] ظهارونو داړخه یوه رقبه آزادکړله.یا ئې دوې [دوه] میاشتې روژې اونیولې كَانَ لَهُ أَنْ يَجْعَلَ ذَلِكَ عَنْ أَيِّهِمَا شَاءَ نوده ته اختیار دې.چه دا کفاره او ګرځوي .په دواړو( ظهارونو) کي د کوم یو د اړخه چې غواړي

تشریح:-په عبارت کي دوې [دوه] مسئلې زیربحث دی .یوه دا چې په یوکس باندې د ظهاردوې [دوه] کفارهٔ وې.اوده د دواړو داړخه یوغلام آزاد کړلو.یا ئې دوې [دوه] میاشتې بلا ناغه روژې اونیولې.نودې کس ته دا اختیارحاصل دې.چه په دې دواړوکفاروکي چې دکومې نه غواړي .تعین دې اوکړي .

وَإِنْ أَعْتَقَ عَنْ ظِهَارٍ وَقَتْلٍ اوکه د د یوظهار اود یو قتل د اړخه داسې اوکړل لَمْ يَجُزْ عَنْ وَاحِدٍ مِنْهُمَا نودا په دې دواړو کي دیو د اړخه هم جائز نه دې وَقَالَ زُفَرُ رحمه الله لَا يُجْزِيهِ عَنْ أَحَدِهِمَا فِي الْفَصْلَيْنِ او امام زفر رحمه الله فرمائیلی دی .چه په دواړو صورتونوکي د یو د اړخه هم جائز نه دې

تشریح:- دوهم صورت دا دې.چه په دې کس باندې دوې [دوه] کفارهٔ واجب وې.یوه د ظهاراوبله د قتل،اوده یوغلام آزاد کړلو.نوپه دې صورت کي یوه کفاره هم ادا نشوه.① دا حکم زموږ په نیزدې.② اوامام زفر رحمه الله فرمائي .چه په دواړو صورتونوکي یوه هم نه ادا کیږي

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رحمه الله لَهُ أَنْ يَجْعَلَ ذَلِكَ عَنْ أَحَدِهِمَا فِي الْفَصْلَيْنِ او امام شافعي رحمه الله فرمائیلي دی .ده ته اختیار دې.چه په دواړو صورتونوکي د کوم یو د اړخه چې غواړي .اودې ګرځوي : لِأَنَّ الْكَفَّارَاتِ كُلَّهَا بِاعْتِبَارِ اتِّحَادِ الْمَقْصُودِ جِنْسٌ وَاحِدٌ ځکه چې واړه کفارات په اعتبار د مقصود سره یوجنس دي

تشریح:- اوامام شافعي رحمه الله فرمائي .چه په دواړو صورتونوکي ده ته اختیاردې.چه دکومې لپاره ئې کوي .دهغې لپاره دې کړي .

دامام شافعي رحمه الله دلیل دا دې.چه دټولوکفاراتو مقصد یودې.یعنې ستر اودګناه اثرزائله کول. او د ټولو کفاراتو جنس هم یو دې.اوپه جنس واحد کي نیت غیرمفیددې.نوداصل کفارهٔ نیت پاتې شو.اوکه دې کس د اصل کفارهٔ نیت کړې وو.نوده ته به په دواو کي د یوې دتعین اختیاروو.نودغه ډول دلته هم په دواړوکفارو کي چې د کوم لپاره غواړي .دهغې لپاره دې مقرر کړي .

وَجْهُ قَوْلِ زُفَرَ رحمه الله أَنَّهُ أَعْتَقَ عَنْ كُلِّ ظِهَارٍ نِصْفَ الْعَبْدِ او د امام زفر رحمه الله د قول وجه داده.چه ده د هرظهار نه نیم غلام آزاد کړو وَلَيْسَ لَهُ أَنْ يَجْعَلَ عَنْ أَحَدِهِمَا بَعْدَ مَا أَعْتَقَ عَنْهُمَا او ددې دواړو د اړخه آزادولو نه روسته ده ته دا اختیار نشته.چه دې په دې دواړو کي یو اړخ نه اوګرځوي لِخُرُوجِ الْأَمْرِ مِنْ يَدِهِ ځکه چې دا امر دده د لاس نه وتلې دې

تشریح:- دامام زفر رحمه الله دلیل دا دې.چه دې په دواړوکفارو کي دهرې لپاره نیم غلام آزاد کړې دې.اوپه کفاره

كي نيم غلام ازادول معتبرنه دي .نودا نيم غلام ازادول تبرع شوه.اوچونكه د دواړو كفارودارخه د ازادولونه روسته دده د لاس نه اختيارهم لاړلو.نوځكه ورته د يوې كفارهٔ دتعين اختيارهم نشته.

وَلَنَا أَنَّ نِيَّةَ التَّعْيِينِ فِي الْجِنْسِ الْمُتَّحِدِ غَيْرُ مُفِيدٍ او زموږ دليل دادې.چه په متحد جنس كي د متعين كول نيت كول مفيد نه دي فَتَلْغُو نونيت لغو شو وَفِي الْجِنْسِ الْمُخْتَلِفِ مُفِيدَةٌ او په مختلف جنس كي مفيد دي

تشريح:- زموږ دليل دا دې.چه په جنس واحد كي دمتعين كولونيت غيرمفيددي.نونيت لغوشو.اوهركله چې نيت لغو شو . نودا داسې شوه.لكه چې ده دظهارد په دوو كفارويوغلام آزادكړلو.اوديونيت ئې هم نه وي كړې.اودا جائزدی .اوده ته اختياردې.چه په دواړوظهاروكي دكوم لپاره غواړي .اودې ګرځوی .نودغه ډول دلته هم جائزدی .

اوكه دواړه كفارهٔ مختلف الجنس وی .نوپه دې صورت كي متعين كول مفيد دی .نومعتبربه وی .نوكه دې كس په كفاره قتل اوپه كفاره ظهاركي په ارادهٔ سره يوغلام آزاد كړلو.نودا غلام به ديودارخه نه آزاديږی .

وَاخْتِلَافُ الْجِنْسِ فِي الْحُكْمِ وَهُوَ الْكَفَّارَةُ هٰهُنَا بِاخْتِلَافِ السَّبَبِ اوحكم يعنى دلته په كفاره كي دجنس مختلف كيدل د سبب په اختلاف سره دی

تشريح:-په «واختلاف الجنس» سره د يوسوال خواب وركوی .سوال دا دې.چه د قتل اوظهاردواړوحكم يودې يعنى كفارهٔ په غلام آزادولوسره،نوهركله چې د دواړو حكم يودې.نودا مختلف الاجناس څنګه شو.

خواب دا دې.چه حكم يعنى په كفاره كي د جنس مختلف كيدل د سبب داختلاف په وجه وی .ځكه چې قتل يقيناً د ظهارنه مختلف دې.اواختلاف د سبب دلالت كوی په اختلاف د حكم،ځكه چې حكم ملزوم وی اوسبب لازم.اواختلاف د لازم دلالت كوی په اختلاف د ملزوم باندې.

نوپه دويمه مسئله كي هركله جنس مختلف شو.نودهغې نه نيت صحيح شو.يوغلام آزادول به د مختلفو دووكفارو لپاره وی .نوپه دې دواړوكي به د هريو لپاره نيم غلام وی .اودا جائز نه ده.ځكه چې په كفاره كي د يوغلام آزادول وی .د نيم نه وی .

نَظِيْرُ الْأَوَّلِ إِذَا صَامَ يَوْمًا فِي قَضَاءِ رَمَضَانَ عَنْ يَوْمَيْنِ .د ړومبى مثال دادې.چه ( يوسړی ) د دوې [دوه] ورځو د رمضان د قضاء د ارخه يوه ورځ روژه اونيوله يُجْزِيهِ عَنْ قَضَاءِ يَوْمٍ وَاحِدٍ نودا به د يوې ورځې د قضاء نه كافى وی

تشريح:- صاحب دهدايه رحمه الله د جنس واحد اومختلف جنس دواړو لپاره يونظيربيان كړې دې.نوفرمائى .چه د جنس واحد نظيردا دې.چه كله يوكس د رمضان د دوو قضاء شوو روژودارخه يوه روژه اونيوله.نوپه دې سره د يوې روژې قضاء صحيح كيږی .اودمختلف

وَنَظِيْرُ الثَّانِي إِذَا كَانَ عَلَيْهِ صَوْمُ الْقَضَاءِ وَالنَّذْرِ اود دوهم مثال دادې.چه كله په ده باندې د قضاء اود نذر روژه وی فَإِنَّهُ لَا بُدَّ فِيهِ مِنَ التَّمْيِيزِ وَاللّٰهُ أَعْلَمُ نو په دې كي تميز كول ضروری دی .والله اعلم بالصواب

تشريح:- جنس مثال دا دې.چه په يوكس باندې يوه روژه د قضاء واجب وه.اوبله روژه د نذرواجب وه.نوپه ده واجب دی. چه په دې دواړوكي ديوې تعين اوكړی .چه د دواړو روژو په مينځ كي امتياز پيدا شی .والله اعلم بالصواب.

## باب اللعان

تشريح:-لعان دباب مفاعلت نه دې.لغوی معنى ئې ده رټل اودرحمت نه لرې كول،اوپه شريعت كي لعان هغه خلورو شهادتونو اولعنت او غضب ته وائى .كوم چې د ښځې او خاوند په مينځ كي جاری وی .اود مجموعهٔ

زياړه:- «دا» باب دلعان «داحكامو په بيان كښې» دې .



نوم لعان ددې امله كيخودې شو.چه په دې كي لعنت مذكور دې.لكه څنګه چې لمونځ په ركوع باندې مشتمل دې.ددې امله د لمونځ نوم ركوع كيخودې شو.اوپه تشهد باندې د مشتمل كيدوپه وجه د التحيات نوم تشهد كيخودې شو.نود لعان نوم كيخودل تسمية الكل باسم الجزء د قبيلهٔ څنى دې.

اود لعان ركن هغه شهادت دې.چه په قسم سره مؤكد وی .اود ددې سبب د سړی په خپله ښځه باندې داسې تهمت لګول چې هغه په پردوكي موجب د حد وی .اوددې شرط قيام د نكاح دې.اوددې حكم د لعان د فارغ كيدو نه روسته دستی د وطى اواستمتاع حرمت دې.اوزموږ په نيزد لعان اهل هغه څوك دې.چه هغه د شهادت اهل وی .اوامام شافعى رحمه الله په نيزهغه څوك دې.چه هغه د يمين اهل وی .

باتې شوه دا خبره چې لعان نوم ورله ولې كيخودې شو.حالانكه په دې كي خو غضب هم موجود دې.نوددې خواب دا دې.چه لعنت د سړی دارخه وی .اوغضب د ښځې دارخه ،اوښكاره خبره ده.چه كوم څيزد سړی سره متعلق وی .هغه مقدم وی .نوځكه په نوم كيخودوكي لعنت ته ترجيح وركړې شوه.غضب ته نه،

### دلعان موجب اوتعريف

قَالَ قدوری رحمه الله فرمائى إِذَا قَذَفَ الرَّجُلُ امْرَأَتَهُ بِالزِّنَا چې كله سړی خپلې ښځې باندې د زنا تهمت اولګولو وَهُمَا مِنْ أَهْلِ الشَّهَادَةِ حالانكه دواړه د شهادت لائق دی . وَالْمَرْأَةُ مِمَّنْ اوښځه هم داسې ده يُحَدُّ قَاذِفُهَا چې ددې په تهمت لګونكى باندې حدلګولې شى . أَوْ نَفَى نَسَبَ وَلَدِهَا يا ئې ددې د بچى د نسب نفى اوكړله وَطَالَبَتْهُ بِمُوجَبِ الْقَذْفِ او ښځې د قذف د موجب مطالبه اوكړله فَعَلَيْهِ اللِّعَانُ نو په سړی به لعان كول واجب وی .

حل اللغة: ① موكدات: جمع د مؤكد ،مضبطونكې ② مقرونة: مولښتى ③ الفراش: بستره]

تشريح:-صورت د مسئلې دا ده.چه كله خاوند په خپله ښځه د زنا تهمت اولګولو.مثلاً ورته ئې اووئيل.چه ته زناكاره ئې.يا ما ته په زنا ليدلې ئې.يا ئې ورته اووئيل.اې زناكارهٔ. دا جمهورو مذهب دې. اوامام شافعى ،امام احمد اوپه يوروايت كي امام مالك رحمه الله هم ددې قائل دې.

اوچه ښځه او خاوند دواړه د شهادت ادا كولولياقت هم لری .اوښځه داسې وی .چه په دې باندې چا تهمت لګولې وی .په هغه باندې حدجاری كيداې شى .يا خاوند دخپلې ښځې دبچى د نسب نه انكاراوكړلو.چه دا ماشوم د زنا نه پيدا دې.يا ئې دا اووئيل.چه دا ماشوم زما نه دې.اوښځې دخپل خاوندنه د موجب قذف مطالبه اوكړله.نوپه خاوند باندې لعان واجب دې.

دا خبره دې ښكاره وی .چه د سړی په خپله ښځه باندې تهمت لګول په ابتداء د اسلام كي حد قذف وو.لكه څنګه چې په پردۍ ښځه باندې د تهمت لګولوموجب حد قذف دې.

وَالْأَصْلُ أَنَّ اللِّعَانَ عِنْدَنَا شَهَادَاتٌ او اصل دادې.او لعان زموږ په نيز ګواهيانې دې مُؤَكَّدَاتٌ بِالْأَيْمَانِ چې په قسم سره مضبوط كړې شوی دی مَقْرُونَةٌ بِاللَّعْنِ (او) لعنت سره ملاوشوی دی قَائِمَةٌ مَقَامَ حَدِّ الْقَذْفِ فِي حَقِّهِ (دا) د سړی په حق كي د حدقذف قائم مقام دی وَمَقَامَ حَدِّ الزِّنَا فِي حَقِّهَا اود ښځې په حق كي د حدزنا قائم مقام دی لِقَوْلِهِ تَعَالَى {وَالَّذِينَ يَرْمُونَ أَزْوَاجَهُمْ وَلَمْ يَكُنْ لَهُمْ شُهَدَاءُ إِلَّا أَنْفُسُهُمْ} ځكه الله تعالى فرمائيلى دی «وَالَّذِينَ يَرْمُونَ أَزْوَاجَهُمْ وَلَمْ يَكُنْ لَهُمْ شُهَدَاءُ إِلَّا أَنْفُسُهُمْ» يعنى كوم خلګ چې خپلو ښځو باندې عيب اولګوی حالانكه ددوی د ذات نه علاوه ددوی لپاره ګواهان نشته وَالِاسْتِثْنَاءُ إِنَّمَا يَكُونُ مِنَ الْجِنْسِ او استثناء د خپل جنس نه كيږی وَقَالَ اللّٰهُ تَعَالَى او الله تعالى فرمائيلى دی فَشَهَادَةُ أَحَدِهِمْ أَرْبَعُ شَهَادَاتٍ بِاللّٰهِ نو په دوی كي د يوكس ګواهى څلور ګواهيانې دې د الله تعالى په قسم سره نَصَّ عَلَى الشَّهَادَةِ وَالْيَمِينِ ( الله تعالى ) د شهادت او قسم صراحت كړې دې

تشریح:- په لعان کي اصل دا دي.چه گواهیانې په قسم سره مؤکد کړې شوی وی او د لعنت د لفظ سره مقترن دی .لنډیز دا چې لعان د خاوند په حق کي د حدقذف قائم مقام دي.اودده د ښځې په حق کي د حد زنا قائم مقام دي.

دلیل دا دي.چه الله تعالی فرمائیلی دی .((وَالَّذِينَ يَرْمُونَ أَزْوَاجَهُمْ وَلَمْ يَكُن لَّهُمْ شُهَدَاءُ إِلَّا أَنفُسُهُمْ فَشَهَادَةُ أَحَدِهِمْ أَرْبَعُ شَهَادَاتٍ بِاللَّهِ إِنَّهُ لَمِنَ الصَّادِقِينَ ۝ وَالْخَامِسَةُ أَنَّ لَعْنَتَ اللَّهِ عَلَيْهِ إِن كَانَ مِنَ الْكَاذِبِينَ ۝ وَيَدْرَأُ عَنْهَا الْعَذَابَ أَن تَشْهَدَ أَرْبَعَ شَهَادَاتٍ بِاللَّهِ إِنَّهُ لَمِنَ الْكَاذِبِينَ ۝)) یعنی کوم کسان چې په خپلومنکوحوښځو باندې د زنا تهمت اولگوی .اودوی سره د خپلې دعوا نه بل څوك گواهان نه وی .(کوم چې په شمارکي څلوروی )نو د دوی شهادت (کوم چې د حبس یا حدقذف لرې کونکې دي.)هم دا دي.چه څلور خله دالله تعالی په نوم قسم اوخوری .اودا اووائی .چه بیشکه زه رښتوني یم.اوپه پنځم ځل به اووائی .چه په ما دې دالله تعالی لعنت وی .که زه دروغژن یم.اوددې نه روسته به ددې ښځې نه سزا (حبس یا حد زنا) په دې طریقه لرې کړې شی .چه هغه به څلور ځله قسم خوری .چه بیشکه دا سړې دروغژن دي.اوپه پنځم ځل به دا اووائی .چه په ما دې دالله تعالی غضب وی .که دې رښتوني وی .(بیان القرآن)

په دې آیت باندې استدلال په دې طریقه کیږی .چه الله تعالی د شهداء نه د خاوندانو استثنی کړې ده. نو ثابته شوه.چه زوج شاهد دي.ځکه چې په استثناء کي اصل دا دي.چه مستثنی د مستثنی منه د جنس څخه وی .حاصل دا چې زوج شاهد دي.اوشاهد بغیر دشهادت نه نشی کیدې.اوپه دې مسئله کي شهادت نوم دي.د لعان د حکایت نه،نوثابته شوه.چه لعان هغه شهادت دي.چه په قسمونو باندې مضبوط شوې وی .

قُلْنَا الرُّكْنُ هُوَ الشَّهَادَةُ نو مونږ اووئیل.چه رکن هم دا شهادت دي الْمُؤَكَّدَةُ بِالْيَمِينِ چې په قسم سره مضبوط کړې شوې دي ثُمَّ قُرِنَ الرُّكْنُ فِي جَانِبِهِ بِاللَّعْنِ بیا دې رکن سره الله تعالی د خاوند په اړخ کي لعنت ملاؤ کړو لَوْ كَانَ كَاذِبًا که دې دروغجن وی وَهُوَ قَائِمٌ مَقَامَ حَدِّ الْقَذْفِ اودا د حدقذف قائم مقام دي وَفِي جَانِبِهَا بِالْغَضَبِ اود ښځې په اړخ کي غضب ملاؤ کړو وَهُوَ قَائِمٌ مَقَامَ حَدِّ الزِّنَا اودا د حدزنا قائم مقام دي

تشریح:- زمونږ په نیز د لعان اهل هغه څوك دي.څوك چې دشهادت اهل وی . اودامام شافعی رحمه الله په نیزلعان هغه قسمونه دی .کوم چې په لفظ د شهادت سره مؤکد شوی وی .دلیل دالله تعالی ارشاد دي.((فَشَهَادَةُ أَحَدِهِمْ أَرْبَعُ شَهَادَاتٍ بِاللَّهِ)) په دې آیت کي دالله تعالی قول چې «بِاللَّهِ» د یمین په معنی کي محکم دي.اوشهادت هم د یمین د معنی احتمال لری .ځکه که یوکس «اشهد» اووئیل.نویمین به وی .نومونږ محتمل په محکم باندې حمل کړلو.

خود احنافو رحمهم الله دا ړخه ځواب دا دي.چه په دې آیت کي د شهادت او یمین دواړو تصریح شوې ده.نوځکه مونږ وایو.چه په لعان کي رکن هغه شهادت دي.چه په یمین سره مؤکد شوې وی .

تشریح:- بیا د خاوند په اړخ کي نې د لعان رکن د لعان د لفظ سره ملاؤ کړې دي.که خاوند په خپل قسم کي دروغژن وی .اودا د خاوندپه حق کي دحد قذف قائم مقام دي.اودښځې په حق کي د لعان رکن یعنی دشهادت لفظ د غضب سره یوځائې کړې شوې دي.اودا دښځې په حق کي د حدزنا قائم مقام دي.

پاتې شوه دا خبره چې د ښځې په شهادت کي نې د لعن په ځائې د غضب لفظ ولې مقترن کړلو.نوددې ځواب دا دي.چه ښځې په خپلو خبروکي دلعنت استعمال زیات کوی .په حدیث کي راغلی دی .« إِنَّهُنَّ يُكْثِرْنَ اللَّعْنَ وَيَكْفُرْنَ الْعَشِيرَ » یعنی زیات لعنت وائی .اودخپل خاوند د احساناتو ناشکری کوی .نودکثرت لعنت په وجه د دوی په نظرونوکي ددې قباحت نه کیدائې شوه.چه دوی د لعنت په اقدام باندې ډاډه شی .نوددې مصلحت په وجه نې د ښځې د شهادت سره لفظ د غضب ملاؤ کړلو.چه دا په دروغه قسم خوړلو نه منع شی .



إِذَا ثَبَتَ هَذَا نَقُولُ هرکله چې دا خبره ثابت شوه نو مونږ وایو لَا بُدَّ أَنْ يَكُونَا مِنْ أَهْلِ الشَّهَادَةِ چې ښځه خاوند دواړه د شهادت لائق کیدل ضروری دی لِأَنَّ الرُّكْنَ فِيهِ الشَّهَادَةُ ځکه چې شهادت په لعان کي رکن دي وَلَا بُدَّ أَنْ تَكُونَ هِيَ مِمَّنْ يُحَدُّ قَاذِفُهَا او ضروری ده.چه دا ښځه داسې وی .چه ددې تهمت لگونکی ته حد ور کولای شی لِأَنَّهُ قَائِمٌ فِي حَقِّهِ مَقَامَ حَدِّ الْقَذْفِ ځکه چې دا لعان د خاوند په حق کي د حد قذف قائم مقام دي فَلَا بُدَّ مِنْ إِحْصَانِهَا نود ښځې محصنه کیدل ضروری دی

تشریح:- صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی .هرکله چې ضابطه معلومه شوه.چه زمونږ په نیزلعان هغه شهادتونه دی .کوم چې په قسمونو سره مؤکد شوی دی .نود ښځې او خاوند دواړو لپاره ضروری ده.چه د شهادت لیاقت لری .ځکه چې په لعان کي شهادت رکن وی .اودا هم ضروری ده.چه ښځه داسې وی .چه په هغې باندې چا تهمت لگولې شی .چه هغه ته حد ورکولې شی .ځکه چې لعان د خاوند په حق کي دحدقذف قائم مقام شی .نوځکه دا ضروری ده.چه ښځه محصنه وی .

وَيَجِبُ بِنَفْيِ الْوَلَدِ اود بچی په نفی کاوه سره هم لعان واجبیږی لِأَنَّهُ لَمَّا نَفَى وَلَدَهَا ځکه چې کله ده ددې د بچی نفی اوکړله صَارَ قَاذِفًا لَهَا ظَاهِرًا نو په ښکاره طور باندې دې ددې تهمت لگونکې شو

تشریح:- اوچه د ماشوم د نسب نفی اوکړی .نوپه دې باندې هم لعان ثابتیږی .ځکه چې هرکله خاوند د خپل بچی نه نفی اوکړله.اودا ئې اووئیل.چه دا زما د نطفې نه نه دې.نودې په دې ښځه باندې تهمت لگونکې دې.لکه څنګه چې د اجنبی ښځې نه د ماشوم د معلوم پلار د نسب نفی اوکړی .نوپه پردئ ښځه دا تهمت لگونکې شمارلې شی .نودغه ډول به دلته کي هم وی .

وَلَا يُعْتَبَرُ احْتِمَالُ أَنْ يَكُونَ الْوَلَدُ مِنْ غَيْرِهِ بِالْوَطْءِ عَنْ شُبْهَةٍ اودا احتمال معتبر نه دي.چه بچی د وطی بالشبه په وجه دده د غیر نه وی كَمَا إِذَا نَفَى أَجْنَبِيٌّ نَسَبَهُ عَنْ أَبِيهِ الْمَعْرُوفِ لکه ( مثلا) یو اجنبی سړی ددې بچی نفی دده د مشهور پلار نه کړې وی وَهَذَا لِأَنَّ الْأَصْلَ فِي النَّسَبِ الْفِرَاشُ الصَّحِيحُ او ددې احتمال نه معتبر کیدل ځکه دی .چه په نسب کي اصل فراش صحیح دي. وَالْفَاسِدُ مُلْحَقٌ بِهِ او فاسد ددې سره لاحق دي فَنَفْيُهُ عَنِ الْفِرَاشِ الصَّحِيحِ قَذْفٌ نود فراش صحیح نه د نسب نفی کول تهمت لگول دی حَتَّى يَظْهَرَ الْمُلْحَقُ بِهِ تردې چې دا ښکاره شی .کوم چې د صحیح سره لاحق دي

تشریح:- په دې عبارت سره د یو سوال ځواب ورکوی .سوال دا دي.که خاوند دخپلې ښځې دماشوم نفی اوکړی . نو پکارده.چه په دې باندې لعان واجب نشی .ځکه چې کیدائې شی .چه دا ماشوم دده څونې نه وی .اودا ښځه زناکاره هم نه وی .په دې طریقه چې دې سره وطی بالشبه شوې وی .

دځواب حاصل دا دي.چه دا شبه معتبر نه ده.ځکه چې دا خبره په اجماع سره منعقد شوې ده.که یواجنبی د یوماشوم دهغه د مشهورپلارنه نفی اوکړله.نودا اجنبی کس به قاذف وی .اگرچه دا احتمال دلته هم موجود دي.اوددې احتمال د عدم اعتباروجه دا ده.چه په نسب کي اصل فراش صحیح دي.اوفراش فاسد دې سره لاحق دي.نوفراش صحیح یعنی ن پلار دخپل ځان نه نفی کول دپلار دا ړخه قذف وی .تردې چې ملحق به یعنی د فراش فاسد یقینی طور معلوم شی .

وَيُشْتَرَطُ طَلَبُهَا اود ښځې مطالبه کول شرط دی لِأَنَّهُ حَقُّهَا فَلَا بُدَّ مِنْ طَلَبِهَا ځکه چې لعان دښځې حق دي.نو ددې طلب کول ضروری دی . كَسَائِرِ الْحُقُوقِ لکه ( څنگه چې ) په ټولو حقوقو کي دی .

تشریح:- صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی .چه لعان به په هغه وخت کي واجب وی .چه هرکله ښځه موجب قذف یعنی د لعان مطالبه اوکړی .ځکه چې لعان دښځې حق دي.ځکه چې په لعان سره د ښځې نه زنا شرم اوملامتیا لرې کیږی .نوهرکله چې لعان د ښځې حق دي.نوددې مطالبه کول هم ضروری دی .لکه څنگه چې په نورو حقوقوکي د صاحب حق مطالبه ضروی وی .

## د خاوند دلعان کولونه منع کیدل

**فَإِنْ امْتَنَعَ مِنْهُ** بیا که خاوند دلعان کاوه نه انکار اوکړو **حَبَسَهُ الْحَاكِمُ** نوحاکم به دا قید کوی **حَتّٰى يُلَاعِنَ** تردې چې دې لعان اوکړی **أَوْ يُكَذِّبَ نَفْسَهُ** یا خپل خان دروغجن کړی

حل اللغة: ① حبس: بندول ②② یکذب: دروغژن کړی ]

تشریح:- مسئله دا ده.① که خاوند د لعان کولونه انکار اوکړلو.نوحاکم به دې قید کړی .تردې چې لعان اوکړی .دا زموږ مذهب دې.② اوامام شافعی ،امام مالك اوامام احمد ﷺ فرمانی .چه په ده به حد جاری کولې شی .بنا (بنیاد) داختلاف دا دې.چه د دوی په نیزموجب د حدقذف دې.اوزموږ په نیزموجب لعان دې.یا دې خپل خان دروغژن کړی .نوکه دې کس خپل خان دروغژن کړلو.نوپه اتفاق سره به په ده حد قذف جاری کولې شی .

**لِأَنَّهُ حَقٌّ مُسْتَحَقٌّ عَلَيْهِ** خکه چې په خاوند باندې دا حق واجب دې **وَهُوَ قَادِرٌ عَلٰى إِيفَائِهِ** اودې ددې په پوره کولوباندې قادرهم دې **فَيُحْبَسُ بِهِ** نو ددې په عوض کې به قید کولای شی **حَتّٰى يَأْتِيَ بِمَا هُوَ عَلَيْهِ** تردې چې خاوند (یا) دا پوره کړی .کوم چې په ده باندې واجب دې **أَوْ يُكَذِّبَ نَفْسَهُ** یا خپل خان دروغجن کړی **لِيَرْتَفِعَ السَّبَبُ** چې سبب لرې شی

تشریح:- دلیل دا دې.چه په خاوند باندې دا حق یعنی لعان واجب دې.په داسې حال کې چې دې نې په پوره کولوقادرهم وی .نودې حق لپاره به دې قیدکړې شی .تردې چې خاوند دا حق پوره کړی .یاخپل خان دروغژن کړي .چه د لعان سبب ختم شی .اودلعان سبب په ښځه خاوندکې دیوبل لره تکذیب کول دی .خکه چې لعان په هغه وخت کې واجبیږی .چه خاوند په خپله ښځه د زنا تهمت اولګوی .اوبیا په خپلوکې هریوبل تکذیب کوی .البته که خاوندخپل تکذیب اوکړی .نوتکاذب پاته پاتې نشو.بلکه خاوند دښځې موافق شو.چه دې زنا نه ده کړې.

**وَلَوْ لَاعَنَ** اوکه خاوند لعان اوکړو **وَجَبَ عَلَيْهَا اللِّعَانُ** نو په ښځه به هم لعان کول واجب وی **لِمَا تَلَوْنَا مِنَ النَّصِّ** د هغه نص په وجه کوم چې موږ تلاوت کړې دې **إِلَّا أَنَّهُ يَبْتَدِأُ بِالزَّوْجِ** خو پیل به د خاوند نه کیږی **لِأَنَّهُ هُوَ الْمُدَّعِي** خکه چې دې مدعی دی .

تشریح:- که خاوندلعان اوکړلو.نوپه ښځه هم لعان واجب دې.دلیل هغه آیت دې.کوم چې موږ اولوستلو.یعنی «فَشَهَادَةُ أَحَدِهِمْ أَرْبَعُ شَهٰدٰتٍ بِاللّٰهِ»

خودلعان پیل به د خاوندنه کیږی .خکه چې خاوند مدعی دې.اولعان د شهادت نوم دې.اودشهادت مطالبه د مدعی نه کیږی .نوخکه به اول خاوند لعان کوی .

## دښځې دلعان نه انکارکول

**فَإِنْ امْتَنَعَتْ** بیا که ښځې انکار اوکړو **حَبَسَهَا الْحَاكِمُ** نو حاکم به دا قید کوی **حَتّٰى تُلَاعِنَ أَوْ تُصَدِّقَهُ** تردې چې دا لعان اوکړی .یا دسړی قول رشتونې کړی **لِأَنَّهُ حَقٌّ مُسْتَحَقٌّ عَلَيْهَا** خکه چې په ښځه باندې دا حق واجب دې **وَهِيَ قَادِرَةٌ عَلٰى إِيفَائِهِ** او دا ددې په پوره کاوه قادره هم ده **فَتُحْبَسُ فِيهِ** نودا به په دې حق کې قید کولې شی .

تشریح:- که ښځې دلعان نه انکاراوکړلو.نوحاکم به دا قید کړی .تردې چې لعان اوکړی .اویا د خاوند تصدیق اوکړی .دلیل دا دې.چه لعان په ښځه باندې هم واجب دې.اودا په دې باندې قادره هم ده.نوخکه به په دې حق کې دا بندولې شی .

## په غلام .کافر.اومحدود فی القذف باندې حدجاری کول



**إِذَا كَانَ الزَّوْجُ عَبْدًا أَوْ كَافِرًا** وکه خاوند غلام وی .یاکافر وی . **أَوْ مَحْدُودًا فِي قَذْفٍ** یا دې په څه تهمت کې (حد) وهلې شوې وی **فَقَذَفَ امْرَأَتَهُ** نوده خپلې ښځې باندې تهمت اولګولو **فَعَلَيْهِ الْحَدُّ** نو په ده به حد واجب وی

تشریح:- صورت د مسئلې دا دې.که خاوندغلام وی .یا کافروی .ددې صورت دا دې.چه ښځه خاوند دواړه کافران وی .بیابښځه مسلمانه شی .او خاوند ته داسلام پیش کولونه وړاندې خاوند په ښځه باندې د زنا تهمت اولګولو.یا خاوند داسې دې.چه دقذف لګولوپه وجه ده باندې حدقذف جاری شوې وی .په دې درې واړه صورتونوکې که خاوند په خپله ښځه باندې دزنا تهمت اولګولو.نوپه ده باندې لعان واجب نه دې.بلکه حدقذف پرې واجب دې.

**لِأَنَّهُ تَعَذَّرَ اللِّعَانُ** خکه چې لعان متعذر شو **لِمَعْنًى مِنْ جِهَتِهِ** د یو معنی په وجه.چه دده د اړخه دې **فَيُصَارُ إِلَى الْمُوجَبِ الْأَصْلِيِّ** نو موجب اصلی اړخ ته به رجوع کولای شی **وَهُوَ الثَّابِتُ بِقَوْلِهِ تَعَالٰى وَالَّذِينَ يَرْمُونَ الْمُحْصَنَاتِ الْآيَةَ** او هغه د الله تعالی قول («وَالَّذِينَ يَرْمُونَ الْمُحْصَنٰتِ») نه ثابت دې **وَاللِّعَانُ خَلَفٌ عَنْهُ** او لعان ددې خلیفه دې.

تشریح:- دلعان وجوب خو ددې امله ممتنع شو.چه دا کس دشهادت اهل پاتې نشو.حالانکه د لعان کونکی لپاره دشهادت اهلیت شرط دې.نوهرکله چې د لعان وجوب ممتنع شو.نوموجب اصلی یعنی حدقذف اړخ ته به رجوع کولې شی .اوحد قذف دالله تعالی د قول «وَالَّذِينَ يَرْمُونَ الْمُحْصَنٰتِ ثُمَّ لَمْ يَأْتُوا بِأَرْبَعَةِ شُهَدَاءَ فَاجْلِدُوهُمْ ثَمٰنِينَ جَلْدَةً وَلَا تَقْبَلُوا لَهُمْ شَهَادَةً أَبَدًا وَأُولٰئِكَ هُمُ الْفٰسِقُونَ» نه ثابت دې.یعنی ددې آیت په وجه اول خو حدقذف مشروع شوې دې.بیا د خاوند په خپله ښځه باندې د تهمت لګولوپه صورت کې لعان د حدقذف نائب اوخلیفه وی .نوکه د لعان دشرط د نشتوالی د امله لعان متعذر شی .نوموجب اصلی یعنی حدقذف ته به رجوع کولې شی .

## دښځې دشهادت عدم اهلیت حکم

**وَإِنْ كَانَ مِنْ أَهْلِ الشَّهَادَةِ** اوکه خاوند دشهادت لائق وی **وَهِيَ أَمَةٌ أَوْ كَافِرَةٌ** وحال داچه ښځه وینځه ده.یا کافره ده. **أَوْ مَحْدُودَةٌ فِي قَذْفٍ** یا دڅه تهمت په وجه (دې ته) حد لګولې شوې وی **أَوْ كَانَتْ مِمَّنْ لَا يُحَدُّ قَاذِفُهَا** یاداسې ښځه وی .چه ددې تهمت لګونکی باندې حد نشی لګولې **بِأَنْ كَانَتْ صَبِيَّةً أَوْ مَجْنُونَةً أَوْ زَانِيَةً** په دې طریقه چې ماشومه ده.یا لیونۍ ده.یا زناکاره ده **فَلَا حَدَّ عَلَيْهِ وَلَا لِعَانَ** .نو ددې په خاوند به حد یا لعان هیڅ نه وی

حل اللغة: ① صبية: ماشومه ② مجنونة: لیونۍ ]

تشریح:- مسئله دا ده.چه خاوند دشهادت اهلیت لری .خودده ښځه دچا وینځه ده.یا کافره ده.یا دې ته حدقذف ورکړې شوې وی .یا دا د داسې کس ښځه وی .چه په دې باندې تهمت لګونکی باندې حدقذف نشی جاری کولې.لکه چې دا ماشومه وی .یا لیونۍ وی .یازناکاره وی .نوپه دې ټولوصورتونوکې ددې په خاوند باندې نه حدواجب دې.اونه لعان.

**لِانْعِدَامِ أَهْلِيَّةِ الشَّهَادَةِ وَعَدَمِ الْإِحْصَانِ فِي جَانِبِهَا** خکه چې د ښځې په اړخ کې د شهادت اهلیت او احصان (دواړه) معدوم دی

تشریح:- خکه چې دا ښځه نه قابله د شهادت ده.اونه ددې اړخ ته احصان شته.نوچه دا ښځه قابله د شهادت نه ده.ددې امله به لعان واجب نه وی .خکه چې لعان د وجوب لپاره دا ضروری ده.چه زوجین به اهل د شهادت وی .اوددې دمحصنه نه کیدوپه وجه په خاوند باندې حدقذف نشی جارې کولې.خکه چې حدقذف په محصنه ښځه باندې دتهمت لګولوپه وجه واجبیږی .

**وَامْتِنَاعُ اللِّعَانِ لِمَعْنًى مِنْ جِهَتِهَا** اود لعان ممتنع کیدل دداسې خبره په وجه دی .چه دښځې اړخ ته موجود دی. **فَيَسْقُطُ الْحَدُّ** نو (د خاوند د ذمې نه) به حدقذف ساقطیږی **كَمَا إِذَا صَدَّقَتْهُ** لکه (کله چې) داښځه ددې تصدیق

اوکړی وَالْأَصْلُ فِي ذٰلِكَ قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او اصل په دې باب کې د نبی کریم ﷺ دا قول دې أَرْبَعَةٌ لَا لِعَانَ بَيْنَهُمْ وَبَيْنَ أَزْوَاجِهِمْ څلور دی چې په دوی کې اودوی په بيبيانو کې لعان نه کيږی اَلْيَهُودِيَّةُ وَالنَّصْرَانِيَّةُ تَحْتَ الْمُسْلِمِ يهودنړه چې د مسلمان سړی په نکاح کې وی .او نصرانيه چې د مسلمان سړی په نکاح کې وی. وَالْمَمْلُوكَةُ تَحْتَ الْحُرِّ او مملوکه چې د آزاد سړی په نکاح کې وی وَالْحُرَّةُ تَحْتَ الْمَمْلُوكِ[1] او آزاده ښځه چې د غلام په نکاح کې وی

تشریح:- صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی .چه لعان د داسې خبرې د امله ممتنع شو.چه هغه د ښځې په جانب کې موجود وو.نود خاوند د ذمهٔ څخه به حدساقط کړې شی .لکه څنګه چې په هغه صورت کې ساقطيږی .کله چې ښځه دده تصديق اوکړی .اوپه دې باب کې اصل د نبی ﷺ ارشاد دې.چه څلور دی .چه دهغوی په زوجاتوکې لعان نشته.① يهوديه چې دمسلمان سړی په نکاح کې وی .② نصرانيه چې دمسلمان په نکاح کې وی .(٣) مملوکه چې د آزاد سړی په نکاح کې وی.④ آزاده ښځه چې د غلام په نکاح کې وی .دا حديث اګرچه د حديث په مشهوروکتابونوکې موجود نه دې.خوابوبکررازی رحمه الله دا په مختصر الطحاوی په شرط باندې ذکرکړې دې.اوابوبکررازی رحمه الله په عدالت،فقه اوضبط کې دمقتدی او پيشوا حيثيت لري .نوځکه په دې حديث باندې استدلال کولې شی .

وَلَوْ كَانَا مَحْدُودَيْنِ فِي قَذْفٍ او که دواړه محدود فی القذف وی فَعَلَيْهِ الْحَدُّ نوپه خاوند به حد واجب وی .

تشریح:- صاحب دهدايه رحمه الله فرمائی .که ښځه خاوند دواړه محدود فی القذف وی .نودتهمت لګولوپه وجه به په خاوند باندې حدقذف لازم وی .

## د لعان طريقه

وَصِفَةُ اللِّعَانِ اود لعان بيان دادې أَنْ يَبْتَدِئَ الْقَاضِي بِالزَّوْجِ چې قاضی د خاوند نه پيل اوکړی فَيَشْهَدُ أَرْبَعَ مَرَّاتٍ نو خاوند څلور خله ګواهی ورکړی . يَقُولُ فِي كُلِّ مَرَّةٍ هرخل دا ووايي أَشْهَدُ بِاللّٰهِ إِنِّي لَمِنَ الصَّادِقِينَ فِيمَا رَمَيْتُهَا بِهِ مِنَ الزِّنَا چې زه د الله تعالی په قسم سره ګواهی ورکوم چې په دې ښځه ماکوم د زنا عيب لګولې دې.په دې کې د رشتيا ويونکو ځنې يم. وَيَقُولُ فِي الْخَامِسَةِ او پنځم ځل ووايي لَعْنَةُ اللّٰهِ عَلَيْهِ إِنْ كَانَ مِنَ الْكَاذِبِينَ فِيمَا رَمَاهَا بِهِ مِنَ الزِّنَا چې ده په دې ښځه د زنا کوم عيب لګولې دې.يا په دې کې که دې د روغجنو ځنې وی .نو په ده د الله لعنت دې يُشِيرُ إِلَيْهَا فِي جَمِيعِ ذٰلِكَ او په دې ټولو ځلوکې به دې ښځې اړخ ته اشاره کوی

حل اللغة* ① المواجهة: مخکی کول،مخاطب کول ② انضمت: يوځائې شی ③ المغايبة: غائب ،غيرحاضر]

تشریح:- په دې عبارت کې امام قدوری رحمه الله د لعان طريقه بيانوی .تفصيل دا دې.چه کله ښځه دقاضی په عدالت کې د قذف مقدمه وړاندې کړی .نواول به قاضی دا ښځه په عفواودرګذرباندې اماده کړی .خوددې باوجود که دا ښځه په جګړه باندې کلکه وه.او خاوند د قذف نه انکارکولو.نوپه ښځه باندې ددووعادلانوګواهانو پيش کول لازم دی .چه قاضی سره ددې دعوی ثابته شی .اوکه ښځې په ګواهۍ کې يوسړې اودوې [دوه] ښځې پيش کړې.نوددوی شهادت به قابل قبول نه وی .اوکه ښځې دوې [دوه] عادلان ګواهان پيش کړل.او خاوند يوسړې اودوې [دوه] ښځې په خپل تصديق باندې پيش کړې.نوپه دې صورت کې به لعان ساقط شی .اوکه خاوند دزنا تهمت لګولوباندې اقراراوکړلو.نوده څخه به د زنا د ثبوت لپاره د څلوروګواهانو مطالبه کولې شی .نوکه ده په زنا باندې د ټولوشرطونوسره څلورګواهان پيش کړل.نواوس به

[1] من حديث عمرو بن شعيب عن أبيه عن جده رضي الله عنه أخرجه ابن ماجه فی الطلاق باب ٢٧ رقم ٢٠٧١.



کنلې شی .چه دا ښځه محصنه (واده شوې) ده.اوکه غيرمصحنه (ناواده شوې) ده.که محصنه وی .نودا رجم(سنګسار) کولې شی .اوکه غيرمحصنه وی .نوکوړې به ورته ورکولې شی .

اوکه دې خاوند سره ګواهان نه وی .نولعان به واجب وی .اود لعان صورت به دا وی .چه قاضی به ښځه او خاوند دواړه حاضرکړی .اودلعان پيل به د خاوند نه کيږی .نودې به څلورخله ګواهی ورکړی .اوهرخله به دا وائی .چه زه دالله تعالی په قسم ګواهی ورکوم.چه ما په دې ښځه د زنا کوم تهمت لګولې دې.په دې کې زه رښتونې يم.اوپه پنځم خل به اووائی .چه ده (يعنی ما) چې په دې ښځه باندې دزنا کوم تهمت لګولې دې.که دې کې زه دروغژن يم.نوپه ده (يعنی په ما) دې دالله تعالی لعنت وی .اوددې خبروپه وخت کې به ښځې اړخ ته اشاره کوی .

ثُمَّ تَشْهَدُ الْمَرْأَةُ أَرْبَعَ مَرَّاتٍ بيا به ښځه څلور خله ګواهی ورکوی تَقُولُ فِي كُلِّ مَرَّةٍ هر خل به وائی . أَشْهَدُ بِاللّٰهِ چې زه د الله تعالی په قسم سره ګواهی ورکوم إِنَّهُ لَمِنَ الْكَاذِبِينَ فِيمَا رَمَانِي بِهِ مِنَ الزِّنَا چې دې سړی په ما کوم د زناکارۍ عيب لګولې دې په‌دې کې دې دروغجنو ځنې دې وَتَقُولُ فِي الْخَامِسَةِ او پنځم خل به وائی غَضَبُ اللّٰهِ عَلَيْهَا إِنْ كَانَ مِنَ الصَّادِقِينَ فِيمَا رَمَانِي بِهِ مِنَ الزِّنَا چې ده د زناکارۍ کوم عيب ما باندې لګولې دې.که داسړې په دې قول کې د رشتيا ويونکوځنې وی .نوپه دې ( په مابانديې) د الله تعالی غضب دې وَالْأَصْلُ فِيهِ او دليل په دې اړه کې د قرآن هغه نص دې مَا تَلَوْنَاهُ مِنَ النَّصِّ کوم چې موږ وړاندې تلاوت کړې دې

تشریح:- بيا به دغه ډول ښځه څلورخله ګواهی ورکوی .اوهرخل به وائی .چه زه د الله تعالی په نوم باندې قسم خورم.اوګواهی ورکوم.چه دې سړی په مابانديې دزنا کوم تهمت لګولې دې.دې په دې کې دروغژن دې.اوپه پنځم خل به اووائی .چه ده په مابانديې د زنا کوم تهمت لګولې دې.که دا کس په دې خبره کې رښتونې وی .نوپه دې (مابانديې) دې دالله تعالی غضب وی .

اودلعان په دې ترتيب باندې دليل هغه آيت دې.کوم چې موږ وړاندې تلاوت کړې دې.وې ګورئ.

وَرَوَى الْحَسَنُ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله او حسن د ابوحنيفه رحمه الله نه روايت کړې دې. أَنَّهُ يَأْتِي بِلَفْظَةِ الْمُوَاجَهَةِ يَقُولُ فِيمَا رَمَيْتُكِ بِهِ مِنَ الزِّنَا چې خاوند به خطاب لفظ راوړی .( يعنی ) دا به وائی .چه د زنا کوم عيب ما په تا باندې لګولې دې. لِأَنَّهُ أَقْطَعُ لِلِاحْتِمَالِ. وَجْهُ مَا ذُكِرَ فِي الْكِتَابِ ځکه چې دا احتمال بالکل ختموی .اوکوم چې په کتاب کې ذکر دې لِأَنَّ لَفْظَةَ الْمُغَايَبَةِ إِذَا انْضَمَّتْ إِلَيْهَا الْإِشَارَةُ ددې وجه داده.چه په لفظ د غائب سره کله اشاره ملاوشی اِنْقَطَعَ الِاحْتِمَالُ نو بيا هم احتمال منقطع کيږی .

تشریح:- دامام ابوحنيفه رحمه الله نه امام حسن رحمه الله روايت کړې دې.چه خاوند دې د ګواهۍ ورکولوپه وخت کې دغائب په ځائې د خطاب صيغه استعمالوی .يعنی ﴿فيما رميتها به من الزنا﴾ په ځائې دې ﴿فيما رميتك به من الزنا﴾ وائی .ځکه چې دخطاب صيغه د غيراحتمال بيخی ختموی .اوکوم چې په کتاب کې ذکر دې. د دې امله دا ده.چه د غائب په صيغهٔ سره کله اشاره اوشوه.نودغيراحتمال اوس هم ختم شو.والله اعلم

## دقاضی په تفريق سره جدائی راتلې

قَالَ قدوری رحمه الله فرمائی فَإِذَا الْتَعَنَا چې کله ( ښځې خاوند) دواړو لعان اوکړو لَا تَقَعُ الْفُرْقَةُ نو جدائی به نه واقع کيږی حَتَّى يُفَرِّقَ الْقَاضِي بَيْنَهُمَا تردې چې په دواړوکې قاضی تفريق اوکړی

حل اللغة* ① الموبده: هميشه لپاره ② التسريح: خوشې کول ، پريخودل]

تشریح:- ①صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی .چه کله ښځه او خاوند دواړه لعان اوکړی .نوصرف په لعان سره تفریق نه واقع کیږی .تردې چې قاضی تفریق اوکړی .نوکه د قاضی د تفریق نه وړاندې په دواړوکې یوکس مړ شو.نوبل به دهغه وارث وی .اوکه سړی ظهاراوکړلو.یا ئې طلاق ورکړلو.نوظهاراوطلاق به واقع کیږی .

وَقَالَ زُفَرُ: تَقَعُ الْفُرْقَةُ بِتَلَاعُنِهِمَا او امام زفر رحمه الله فرمائیلی دی .چه جدائی واقع کیږی لِأَنَّهُ يَثْبُتُ الْحُرْمَةُ الْمُؤَبَّدَةُ بِالْحَدِيثِ خکه چې حدیث سره ثابتیږی .چه په لعان کاوه سره حرمت مؤبده ثابتیږی

تشریح:- امام زفر رحمه الله فرمائی .چه صرف په لعان کولوسره فرقت واقع کیږی .دقاضی د تفریق څه اړتیا نشته.اودا د امام مالک رحمه الله مذهب هم دې. دلیل حدیث «المتلاعنان لایتجمعان ابداً» دې.یعنی لعان کونکی ښځه اوخاوند کله هم نشی جمع کیدې.دا حدیث په دې دلالت کوی .چه صرف په لعان باندې تفریق واقع کیږی .

وَلَنَا أَنَّ ثُبُوتَ الْحُرْمَةِ او زموږ دلیل دادې.چه د حرمت ثابتیدل يُفَوِّتُ الْإِمْسَاكَ بِالْمَعْرُوفِ امساک بالمعروف فوت کوی فَيَلْزَمُهُ التَّسْرِيحُ بِإِحْسَانٍ نو په خاوند به تسریح بالاحسان لازم وی فَإِذَا امْتَنَعَ نو هرکله چې خاوند منع شو نَابَ الْقَاضِي مَنَابَهُ دَفْعًا لِلظُّلْمِ .نو قاضی دده قائم مقام شو.چه ظلم لرې شی

تشریح:- زموږ په نیزد لعان په وجه د حرمت ثبوت امساک بالمعروف ختموی .نوپه خاوند باندې تسریح بالاحسان واجب ده.خوچه کله خاوند د تسریح بالاحسان نه منع شو.نوقاضی به ښځې نه د ظلم لرې کاوه لپاره د خاوند قائم مقام شی .اوتسریح بالاحسان (تفریق) به اوکړی .نوثابته شوه.چه دقاضی تفریق ضروری دې.

دَلَّ عَلَيْهِ قَوْلُ ذَٰلِكَ الْمُلَاعِنِ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اوزموږ په قول باندې دلیل د هغه صحابی قول دې.چاچه د نبی کریم ﷺ په خدمت کې د لعان وئیلی وو كَذَبْتُ عَلَيْهَا يَارَسُولَ اللهِ ای دالله رسوله ﷺ ! ما په دې ښځه باندې دروغ ( تهمت) تړلې وو فَقَالَ لَهُ امسكها نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل.چه دا اوساته.هغه فَقَالَ إِنْ أَمْسَكْتُهَا"[1] فهی طالق ثلاثا اووئیل.که زه دا اوساتم.نودا دې په درې طلاقوسره طلاقه وی قَالَهُ بَعْدَ اللِّعَانِ (دا کلام) د لعان نه روسته وئیلې دې

تشریح:- زموږ د مذهب تائیدد عویمرعجلانی ؓ په قول سره هم کیږی .واقعه دا ده.چه عویمراودده ښځې لعان اوکړلو.دلعان د فراغت نه روسته دنبی ﷺ په دربارکې حاضرشو.اوعویمر ؓ عرض اوکړلو.اې دالله رسوله ما چې د خپلې ښځې په اړه کې څه وئیلی وو.واړه دروغ وو.نونبی ﷺ ورته اوفرمائیل.چه ته دا ایساره کړه.یعنی په نکاح کې ئې پاته اوساته.عویمر ؓ چې دا واوریدل.نووې وئیل.که زه دا اوساتم.نودا دې په درې طلاقو طلاقه وی .دا خبرې دلعان نه روسته شوې وې.اونبی ﷺ په دې باندې څه انکاراونکړلو.که صرف په لعان کولوسره فرقت واقع کیدلو.نونبی ﷺ به پرې انکارکړې وو.اودا به ئې وئیلی وو.چه اوس دخپل ځان په دروغژن کولوڅه فائده نه رسی .ځکه چې په صرف لعان کولوبه تفریق واقع شوې وو.نوددې واقعه نه ثابته شوه.چه صرف په لعان کولوسره تفریق نه واقع کیږی .

وَتَكُونُ الْفُرْقَةُ تَطْلِيقَةً بَائِنَةً اودا جدائی به طلاق بائن وی عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ رحمه الله د امام ابوحنیفه او امام محمد رحمه الله په نیز لِأَنَّ فِعْلَ الْقَاضِي انْتَسَبَ إِلَيْهِ ځکه چې د قاضی فعل به دې سړی اړخ ته منسوب وی كَمَا فِي الْعِنِّينِ لکه (ځنګه) چې په عنین کې ( دی ).

1)من حدیث سهل بن سعد الساعدی اخرجه البخاری فی الطلاق باب ۹۲ ومسلم فی اللعان رقم ۱وابوداؤد فی الطـلاق ۷۲ رقم ۵۴۲۲والنسائی فی الطلاق باب ۵۳ وابن ماجه فی الطلاق باب ۷۲ والدارمی فی النکاح باب ۹۳ وأحمدفی المسند ۵۴۳۳).



تشریح:- په لعان کولوسره چې کوم تفریق واقع کیږی .دطرفینو رحمهما الله په نیزدا طلاق بائن دې① دلیل دا دې.چه دقاضی تفریق خاوند اړخ ته منسوب کیږی .لکه ځنګه که د یوکال مهلت نه روسته قاضی عنین (نامرده) اود ده د ښځې په مینځ کې تفریق اوکړی .نودا تفریق به طلاق بائن وی .نودغه ډول دلته به هم د قاضی تفریق طلاق بائن وی .② دوهم دلیل دا دې.چه ددې تفریق مقصد دښځې نه دظلم لرې کول دی .اوظلم لرې کول د طلاق بائن نه بغیرپه بل څه نشی حاصلیدې.③ دغه ډول د مسلم ابراهیم نخعی رحمه الله نه روایت دې.فرمائیلې ئې دی .چه «اللعان تطلیقة بائنة» والله اعلم .

## دخپل ځان مکذب لپاره دمصدق لها ښځې سره نکاح کولوحکم

وَهُوَ خَاطِبٌ إِذَا أَكْذَبَ نَفْسَهُ عِنْدَهُمَا او دا سړې چې کله خپل ځان دروغجن کړی .نود طرفینو رحمهما الله په نیز ( دې ښځې سره) نکاح کولې شی .

تشریح:- په دې عبارت کې دیوې مستقلې مسئلې بیان دې.هغه دا چې یوکس د قاضی دتفریق نه روسته خپل ځان دروغژن کړی .یعنی دخپلې خبرې نه رجوع اوکړی .نوپه ده به حدقذف واجب وی .خوپه دې اړه کې اختلاف دې.چه دې دخپلې متلاعنه ښځې سره دوباره نکاح کولای شی که نه؟① نوپه دې اړه کې دطرفینو رحمهما الله مذهب دا دې.چه لکه دنورو خلګو لپاره ددې ښځې سره نکاح جائزده.نودغه ډول دده لپاره هم جائزده.

وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ رحمه الله اوامام ابویوسف رحمه الله فرمائیلی دی هُوَ تَحْرِيمٌ مُؤَبَّدٌ چې دا دائمی حرمت دې لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ځکه نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی {الْمُتَلَاعِنَانِ لَا يَجْتَمِعَانِ أَبَدًا}[1] نَصَّ عَلَى التَّأْبِيدِ چې لعان کونکی ښځه خاوند کله هم نشی جمع کیدلې.( دا) په دائمی حرمت باندې نص دې

تشریح:- امام ابویوسف رحمه الله فرمائی .چه په خپل مینځ کې لعان اوکړی .نوپه دې سره حرمت مؤبده ثابتیږی .نودا ښځه په ده باندې همیشه لپاره حرامه شوه.هم دا دامام زفر،حسن اوامام شافعی رحمهم الله قول هم دې.دلیل دا دې.چه «المتلاعنان لایجتمعان ابداً» یعنی لعان کونکی ښځه خاوند کله هم نشی جمع کیدې.په دې حدیث کې په دائمی حرمت باندې صراحت شوې دې.

وَلَهُمَا اود طرفینو رحمهما الله دلیل دادې أَنَّ الْإِكْذَابَ رُجُوعٌ چې خپل ځان دروغجن کول ( د خپل قول نه) رجوع کول دی وَالشَّهَادَةُ بَعْدَ الرُّجُوعِ لَا حُكْمَ لَهَا. اود رجوع نه روسته د شهادت هیڅ حق نه پاتې کیږی وَلَا يَجْتَمِعَانِ مَادَامَا مُتَلَاعِنَيْنِ اونه به جمع کیږی .چه ترکومه دوی دواړه لعان کونکی دی وَلَمْ يَبْقَ التَّلَاعُنُ وَلَا حُكْمُهُ بَعْدَ الْإِكْذَابِ اود خپل ځان دروغجن کاوه نه روسته نه لعان پاته پاتې شو.او نه ددې حکم فَيَجْتَمِعَانِ[2] نو اوس دواړه جمع کیدای شی .

تشریح:- دطرفینو رحمهما الله دلیل دا دې.چه د خاوند خپل ځان دروغژن کول دخپل قول نه رجوع کول دی .اود رجوع کولونه روسته د شهادت حکم باطلیږی .اوحدیث مطلب هم دا دې.چه ترڅوپورې دا دواړه لعان کونکی وی .نوجمع کیدای نشی .اوچه خپل ځان دروغژن کړی .نوپه خپل مینځ کې لعان کول پاته پاتې نشو.نوحکم هم پاته پاتې نشو.

(1) من حدیث سهل بن سعد (رضی الله عنه) أخرجه أبوداؤد فی الطلاق باب ۲۶ رقم ۲۲۵۶).-

(2) القول الراجح: هو قول الطرفین (رحمة الله علیهما) کذا فی فتح القدیر (۴\۱۲۱) والخانیة (۲\۲۶۹) والهندیة (۱\۵۱۶) وملتقی الأبحر. (۱\۴۶۶) البحر الرائق (۴\۱۱۷) نقلا عن القول الراجح (۱\۳۶۲).

ﷺ دخپل تکذیب نه روسته دلعان پاته پاتې کیدل خوښکاره دی .اودلعان حکم ددې امله پاته پاتې نشو.چه کله ده خپل تکذیب اوکړلو.نوپه ده باندې حدواجب شو.نود لعان اهلیت باطل شو.اوهرکله چې د لعان اهلیت باطل شو.نوددې حکم به هم باطل وی .ددې امله دواړه جمع کیداې شی .

## د بچی د نفی کولوپه صورت کې د زنا تهمت لګول

وَلَوْكَانَ الْقَذْفُ بِنَفْيِ الْوَلَدِ اوکه تهمت لګول د بچی د نفی کاوه په ذریعه وی .نَفَى الْقَاضِي نَسَبَهُ نو قاضی به ددې بچی د نسب نفی کوی وَأَلْحَقَهُ بِأُمِّهِ اودا بچې به ددې مور سره لاحق کوی

تشریح:- مسئله دا ده.که یوکس په خپله ښځه باندې د زنا عیب په دې طریقه اولګولو.چه دا ماشوم زما د نطفه نه نه دی.نودلعان نه روسته به قاضی ددې ماشوم نسب دده نه نفی کړی .اوماشوم به مورسره کړی .

وَصُورَةُ اللِّعَانِ اود لعان صورت به دا وی .أَنْ يَأْمُرَ الْحَاكِمُ الرَّجُلَ چې حاکم به دې سړی ته ووایې فَيَقُولَ أَشْهَدُ بِاللّٰهِ هغه به وائی.چې زه د الله تعالی په قسم سره ګواهی ورکوم.إِنِّي لَمِنَ الصَّادِقِينَ چې زه د رشتیا ویونکو څنې یم فِيمَا رَمَيْتُكِ بِهِ مِنْ نَفْيِ الْوَلَدِ په دې خبره کې چې ما په تا باندې د بچی د نفی کاوه عیب اولګولو وَكَذَا فِي جَانِبِ الْمَرْأَةِ اوهم دغه ډول د ښځې په اړخ کې دی.

تشریح:- اوپه دې کې دلعان صورت دا دې.چه قاضی به دغه سړی ته حکم اوکړی .چه هغه داسې اووائی.زه دالله تعالی په قسم سره ګواهی ورکوم.چه ما د ماشوم نفی کړې ده.اوپه ښځه مې عیب لګولې دې.په دې کې زه رښتونې یم.اوښځه به داسې اووائی .چه زه په الله تعالی باندې قسم خوړلوسره ګواهی ورکوم.چه تا په ما باندې د ماشوم د نفی کوم عیب لګولې دې.په دې کې ته دروغژن یې.

## د زنا اوماشوم نفی کولوحکم

وَلَوْقَذَفَهَا بِالزِّنَا وَنَفْيِ الْوَلَدِ اوکه خاوند په ښځه اود بچی د نفی عیب اولګولو ذَكَرَفِي اللِّعَانِ الْأَمْرَيْنِ نوپه لعان کې به دواړه خبرې ذکر کولای شی ثُمَّ يَنْفِي الْقَاضِي نَسَبَ الْوَلَدِ بیا به قاضی بچې د نسب نفی اوکړی . وَيُلْحِقُهُ بِأُمِّهِ او ددې د مورسره به یې ملحق کړی

حل اللغة* ① یوفر: پوره به شی ② ینفک:جدا کیږی ]

تشریح:-صورت د مسئلې دا دې.چه خاوند په خپله ښځه دزنا تهمت اولګولو.اودماشوم نفی یې اوکړله.اودا یې اووئیل.چه دا ماشوم زما د نطفه نه نه دې.نوپه لعان کې به د دواړو خبروذکرکولې شی .اوبیا به قاضی د پلار نه د بچی نفی اوکړی .اودمور سره به هغه لاحق کړی .

لِمَا رُوِيَ {أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نَفَى وَلَدَ امْرَأَةِ هِلَالِ بْنِ أُمَيَّةَ عَنْ هِلَالٍ خکه روایت دې.چه نبی کریمﷺ د هلال بن امیه د ښځې د بچې (نسب) د هلال نه قطع کړو وَأَلْحَقَهُ بِهَا} (١) دده مور سره یې لاحق کړو

تشریح:- دلیل هغه حدیث دې.کوم چې دابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دې.خادم ستاسود شوق لپاره پوره حدیث نقل کوی

ﷺ دابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دې.فرمائی .چه هلال بن امیهؓ راغلو.اودوی په هغه درې کسانوکې یودې.د چا چې الله تعالی توبه قبوله کړې وه.دې د شپې دپټی نه واپس راغلو.اودخپلې ښځې سره یې یوسړې په خپلو سترګو اولیدلو.اوپه خپلوغوږونونې واوریدلو.نود سهار پورې یې څه اونه وئیل.اوبیا سهار نبی ﷺ په خدمت کې حاضرشو.اوعرض یې اوکړلو.اې دالله پیغمبره! زه د شپې خپل کورته راغلم.نوماهلته یوسړې په خپلو سترګواولیدلو.اوپه خپلوغوږونومې واوریدلو.نورسول اللهﷺ باندې دا خبره ښه اونه لګیدله.نو((وَالَّذِينَ يَرْمُونَ

(١) تقدم تخریجه فی الحدیث السابق)_



أَزْوَاجَهُمْ وَلَمْ يَكُنْ لَهُمْ شُهَدَاءُ إِلَّا أَنْفُسُهُمْ)) دوې [دوه] آیاتونه نازل شول.کله چې د رسول اللهﷺ نه د وحی کیفیت ختم شو.نوهلال بن امیهؓ ته یې اوفرمائیل. چې زیرې قبول کړه.الله تعالی ستا لپاره ګنجائش راویستلو.هلال بن امیهؓ اوفرمائیل.چه زما دالله تعالی نه هم دا امید وو.نورسول اللهﷺ د دوی په ښځې پسې نفر اولیږل.هغه راغله.نونبی ﷺ دواړو ته آیاتونه واورول.اودوی ته یې نصیحت اوکړلو.اوخبردارئې کړل.چه دآخرت عذاب ډیرسخت دې.هلال بن امیه ؓ اووئیل په الله قسم چې ما ددې په اړه کې رښتیا وئیلی دی .اوښځې اووئیل.چه نه (بلکه) دروغ دی .بیا نبی ﷺ اوفرمائیل.چه په دې دواړوکې لعان اوکړئ.نوهلال ته اووئیلی شو.چه ګواهی ورکړه.هغه په الله تعالی باندې قسم خوړلوسره څلور خله ګواهی ورکړله.چه دې د رښتونکو څنې دې.اوکله چې د پنځم څل وار راغلو.نونبی ﷺ اوفرمائیل.چه اې هلاله! دالله تعالی نه اوویریږه.څکه چې د دنیا عذاب دآخرت په مقابله کې آسان دې.اودا پنځمه کلمه د عذاب واجبونکې ده.هلالؓ اووئیل.په الله تعالی مې دې قسم وی .چه الله تعالی به ماته په دې کلمه باندې عذاب نه راکوی لکه څنګه چې یې ماته په دې کلمه باندې کوړې رانکړې.نوپه پنځم څل یې ګواهی ورکړله.که دې په دروغژنوکې وی .نوپه ده دې دالله تعالی لعنت وی .یعنی که زه دروغژن یم.نوپه ما بدې دالله تعالی لعنت وی .بیا ښځې ته اووئیلی شو.چه ته ګواهی ورکړه.هغې په الله تعالی باندې قسم خوړلو سره څلورخله ګواهی ورکړله.چه دا سړې د دروغژنوځنې دې.بیاچه کله د پنځم څل وار راغلو.نودې ښځې ته اووئیلی شو.چه دالله تعالی نه اوویریږه.د دنیا عذاب د آخرت د عذاب نه آسان دې.اودا کلمه په تا باندې عذاب نازلونکې ده.نوهغه د لږ وخت لپاره غلې شوه.اوبیا یې اووئیل.په الله مې دې قسم وی .چه زه به همیشه لپاره خپل قوم رسوا نکړم.بیا یې پنځمه کلمه اووئیله.که دا سړې د رښتونکوځنې وی .نوپه دې (یعنی ما) دې دالله تعالی غضب وی .بیا رسول اللهﷺ د دې دواړو په مینځ کې جدائی اوکړله.اوحکم یې اوکړلو.چه ددې بچې دې هیڅ یوپلار ته نشی منسوب کولې.اوپه دې ښځه یا ددې په ماشوم دې عیب نشی لګولې.اوڅوک چې په دې ښځه یا ددې په ماشوم باندې عیب اولګوی .هغه باندې به حد واجبیږی .اونبی ﷺ فیصله اوکړله.چه د ښځې لپاره نفقه اوسکنی نشته.ددې امله په دې دواړوکښې جدائی بغیردطلاقه اوبغیروفاته واقع شوه.اونبی ﷺ اوفرمائیل.که دې داسې بچې اوزیږلو.چه سوروالی ته مائل وی .نزدې کوناټووالـه وی .اوپلټه نس یې وی .دنروپنډووالـه وی .نوهغه به د هلال بن امیهؓ وی .اوکه دې داسې بچې اوزیږولو.چه غنم رنګې وی .ګلګتو ویختـه والـه وی .تام ال خلګ ت وی .دغوښې اوپنډووالـه وی .اودغتو(چوړون) والـه وی .نوهغه به دهغه چاوی .چا سره چې پرې د زنا عیب لګیدلې دې.بیا هغې اوزیږلو.غنم رنګې،ګلګتو ویختو والـه،تام ال خلګ ت،غوښه اوپنډووالـه، او دغتو (چوبړون) والـه،بیا نبی ﷺ اوفرمائیل.که دایمان یعنی لعان حکم نه وو راغلې.نوزما اودده به یوشان وو. دعکرمـهؓ بیان دې.چه دغـه بچې روستو دمصرحاکم مقرر کړې شو.حالانکه هیڅ یوپلارته یې نسبت نشوکیدې. ددې حدیث نه معلومه شوه.چه دماشوم به د پلارنه نفی کولې شی .اومورته بې نسبت کولې شی .

وَلِأَنَّ الْمَقْصُودَ مِنْ هٰذَا اللِّعَانِ نَفْيُ الْوَلَدِ او په دې وجه هم چې په دې لعان سره مقصود دادې.چه د بچی نفی وی فَيُوَفَّرُ عَلَيْهِ مَقْصُودُهُ نود خاوند مقصود به په دې سره پوره حاصل شی فَيَتَضَمَّنُهُ الْقَضَاءُ بِالتَّفْرِيقِ نود جدا کاوه فیصله به ده ته ګډه وی

تشریح:- دوهم عقلی دلیل دا دې.چه دې لعان مقصود د بچی دنسب نفی کول دی .نود خاوند مقصود په دې باندې پوره پوره حاصلیږی .اوچه په دواړوکې دتفریق حکم ورکولوکې دا مقصود هم حاصلیږی .نودقاضی لپاره د بچی دنسب نفی کاوه لپاره د جلا الفاظو راوړلوڅه اړتیا نشته.

وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رحمه الله اود ابویوسف رحمه الله نه روایت دې أَنَّ الْقَاضِيَ يُفَرِّقُ چې قاضي به تفریق کوی وَيَقُولُ قَدْ أَلْزَمْتُهُ أُمَّهُ. او وا چې ما بچې دده مورسره لازم کړو وَأَخْرَجْتُهُ مِنْ نَسَبِ الْأَبِ (١) اود پلار د نسب نه مې دا خارج کړو لِأَنَّهُ يَنْفَكُّ عَنْهُ څکه چې د بچی نفی په تفریق سره جدا کیږی فَلَا بُدَّ مِنْ ذِكْرِهِ په دې وجه دده ذکرکول ضروري دی.

تشریح:- دامام ابویوسف رحمه الله نه یوروایت دا هم دې چه قاضی دې په ښځه خاوند کې تفریق اوکړی اوبنکاره دې اووائی .چه ما ماشوم د پلارد نسب نه اوویستلو.او دده په مور پورې مې لازم کړلو.

**د خاوند دخپل ځان تکذیب کولونه روسته دنکاح حکم**

فَإِنْ عَادَ الزَّوْجُ وَأَكْذَبَ نَفْسَهُ بیا که خاوند رجوع اوکړله.او خپل ځان نې دروغجن کړو. حَدَّهُ الْقَاضِي نو قاضي به ده ته حدقذف ورکوی لِإِقْرَارِهِ بِوُجُوبِ الْحَدِّ عَلَيْهِ څکه چې ده پخپل ځان باندې د حد واجبولو اقرار کړې دې وَحَلَّ لَهُ أَنْ يَتَزَوَّجَهَا او ددې سرې لپاره حلال دی .چه ددې ښځې سره نکاح اوکړی وَهَذَا عِنْدَهُمَا اوداد امام ابوحنیفه اود امام محمد رحمه الله په نیز دی

تشریح:- مسئله دا ده.که دلعان نه روسته خاوند دخپلې خبرې نه رجوع اوکړله.اوخپل تکذیب ئې اوکړلو. نو قاضی به ورته حد قذف ورکړی .دلیل دا دې.چه ده په خپل ځان باندې دحدقذف جاری کاوه اقراراوکړلو.نودده د اقرارد امله به ورته حد قذف ورکولې شی .اودخپل ځان دروغژن کولونه روسته دې د دغه ښځې سره نکاح کولې شی .خودنکاح دجواز دا حکم د طرفینو رحمهما الله په نیزدې.

لِأَنَّهُ لَمَّا حُدَّ څکه چې کله ده ته حد ورکړې شو لَمْ يَبْقَ أَهْلًا لِلِّعَانِ نودې د لعان قابل پاتې نشو فَارْتَفَعَ حُكْمُهُ الْمَنُوطُ بِهِ نوحکم چې دده سره متعلق وو.هغه هم پاسیدلو وَهُوَ التَّحْرِيمُ او هغه حکم تحریم دې

تشریح:- دلیل دا دې.کله خاوندته حدقذف اولګولې شو.نوپه ده کښې دلعان صلاحیت پاتې نشو.اوهرکله چې دلعان صلاحیت پاتې نشو.نوپه دې پورې چې د تحریم کوم حکم متعلق وو.هغه به هم مرتفع (پورته) شی .نوځکه ددې ښځې سره دوباره نکاح کول صحیح دی .

وَكَذَلِكَ إِنْ قَذَفَ غَيْرَهَا اوهم دغه ډول که سړی د خپلې ښځې نه علاوه باندې د زنا تهمت اولګولو فَحُدَّ بِهِ چې ددې په وجه ده ته حد اولګولې شو.( نو بیا هم ده ته جائز دی .چه دې ښځې سره نکاح اوکړی ) لِمَا بَيَّنَّا د هغه دلیل په وجه چې مونږ بیان کړو وَكَذَا إِذَا زَنَتْ اوهم دغه ډول که ښځې زنا اوکړله. فَحُدَّتْ بیا دې ته حد اولګولې شو لِانْتِفَاءِ أَهْلِيَّةِ اللِّعَانِ مِنْ جَانِبِهَا څکه چې د ښځې د اړخه د لعان لیاقت منتفي شو.

تشریح:- دغه ډول که یوکس په پردۍ ښځه باندې دزنا تهمت اولګولو.اوبیا ورته حدقذف ورکړې شو.نوهم ددې سړی لپاره جائزده.چه ددغه ښځې سره نکاح اوکړی .دلیل په وړاندینۍ مسئله کې تیرشوې دې.

اودا حکم په هغه وخت کې هم دې.چه ښځې خاوند د نکاح نه روسته اوددخول نه وړاندې لعان اوکړلو .او بیا دلعان نه روسته دغه ښځې زنا اوکړله.اود زنا حد پرې جاری شو.نوددغه خاوند لپاره جائزدی .چه ددې سره نکاح اوکړی .دلیل دا دې.چه کله دې ته حد زنا ورکړې شو.نوپه دې ښځه کې دلعان صلاحیت پاتې نشو.اوهرکله چې د لعان صلاحیت پاتې نشو.نودلعان حکم (تحریم کوم چې په دې پورې متعلق وو) هغه هم پورته شو.اوهرکله چې د لعان حکم تحریم پورته شو.نونکاح هم جائز شوه.

**په صغیره اولیونۍ باندې د زنا تهمت لګول**

(١) القول الراجح هو قول أبي يوسف رحمه الله كذا في فتح القدير(١٢٣\٤)والكفاية (١٢٣\٤)و ردالمحتار(٦٤٠\٢) والبحرالرائق (١١٩\٤) نقلاً عن القول الراجح (٣٦٢\١)



وَإِذَا قَذَفَ امْرَأَتَهُ اوکه یو سړی پخپله ښځه باندې د زنا عیب اولګولو. وَهِيَ صَغِيرَةٌ حالانکه دا ماشومه ده أَوْ مَجْنُونَةٌ یا لیونۍ ده فَلَا لِعَانَ بَيْنَهُمَا نو په دوی دواړوکې به لعان نه کیږی . لِأَنَّهُ لَا يُحَدُّ قَاذِفُهُمَا څکه چې ددوی تهمت لګونکو باندې حد نشی لګولې. لَوْ كَانَ أَجْنَبِيًّا اګرچه اجنبی وی فَكَذَا لَا يُلَاعِنُ الزَّوْجُ نو هم دغه ډول به په خاوند هم لعان نه کیږی لِقِيَامِهِ مَقَامَهُ څکه چې لعان د حد قذف قائم مقام دې

حل اللغة: ① اخرس: ګونګا ② لایعری: نه خالی کیږی ③ تندرئ: دفع کولې شی .لرې کولې شی ]

تشریح:- مسئله دا ده.که خاوندپه خپله ښځه باندې د زنا تهمت اولګولو په داسې حال کې چې هغه ماشومه یا لیونۍ وه.نوپه دې دواړو صورتونوکې به په دوی کې لعان نه کیږی .

دلیل دا دې.چه د ماشومې او لیونۍ په قاذف باندې حدقذف نشی جاری کولې اګرچه د دوی قاذف یواجنبی سړې وی .څکه چې دلعان په شرطونوکې یوشرط دا دې چه ښځه داسې وی .چه د هغې قاذف باندې حدقذف جاری کیدای شی .نودغه ډول به د خاوند نه د لعان مطالبه نشی کولې څکه چې لعان د حدقذف قائم مقام دې.(نوچه حدقذف نشي ورکولې.لعان به هم نشی کولې)

وَكَذَا إِذَا كَانَ الزَّوْجُ صَغِيرًا أَوْ مَجْنُونًا اوهم دغه شان چې کله خاوند بچې وی .یا لیونې وی .( نو بیا هم لعان نشته) لِعَدَمِ أَهْلِيَّةِ الشَّهَادَةِ څکه چې په خاوند کې د شهادت لیاقت نشته

تشریح:- دا حکم په هغه وخت کې هم دې.چه خاوند یا نابالغه وی .یا لیونې وی .څکه چې دا دواړه د شریعت مخاطب نه دی .نوځکه د شهادت لائق هم نه دی .حالانکه د لعان لپاره ضروری ده.چه ښځه خاوند د شهادت اهل وی .

وَقَذْفُ الْأَخْرَسِ اود ګونګی تهمت لګول لَا يَتَعَلَّقُ بِهِ اللِّعَانُ دې سره به هم لعان نه متعلق کیږی لِأَنَّهُ يَتَعَلَّقُ بِالصَّرِيحِ څکه چې لعان صریح قذف سره متعلق کیږی كَحَدِّ الْقَذْفِ لکه په حد قذف کې ، وَفِيهِ خِلَافُ الشَّافِعِيِّ رحمه الله او په دې کې د امام شافعی رحمه الله اختلاف دې وَهَذَا لِأَنَّهُ لَا يَعْرَى عَنِ الشُّبْهَةِ اودا څکه چې د ګونګی وئیل د شبهې نه خالی نه دی . وَالْحُدُودُ تَنْدَرِئُ بِهَا او حدود د شبهاتو په وجه لرې کولې شی .

تشریح:- اوکه ګونګا په خپله ښځه باندې د زنا تهمت اولګولو.نوپه دې پورې هم لعان نه متعلق کیږی .دلیل دا دې.چه لعان په صریحی قذف پورې متعلق کیږی .لکه څنګه چې حدقذف په صریحی قذف پورې متعلق کیږی .په دې کې دامام شافعی رحمه الله اختلاف دې.دوی فرمائی .چه د ګونګا اشاره داسې ده.لکه څنګه چې د خبرې کونکې اشاره ده.اود ګونګا په اشاره د لعان عدم وجوب ددې امله دې.چه دګونګا د زنا عیب لګولوکې شبه موجود ده.اود شبهاتو په وجه حدود لرې کولی شی .

**په «لیس حملك مني» باندې د لعان د ثبوت حکم**

وَإِذَا قَالَ الزَّوْجُ اوکه خاوند اووئیل لَيْسَ حَمْلُكِ مِنِّي چې ستا حمل زما نه نه دې. فَلَا لِعَانَ بَيْنَهُمَا (١) نو لعان به نه وی . وَهَذَا قَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ وَزُفَرَ رحمه الله اودا د امام ابوحنیفه اود زفر رحمه الله قول دې لِأَنَّهُ لَا يُتَيَقَّنُ بِقِيَامِ الْحَمْلِ فَلَمْ يَصِرْ قَاذِفًا څکه چې د حمل د وجود نشته.نو دې به قاذف نه وی

تشریح:- مسئله دا ده.که خاوندخپلې ښځې ته اووئیل. «حملك ليس مني» نوپه دې باندې نه لعان ثابتیږی .اونه حدخود لعان عدم ثبوت د امام ابوحنیفه اوامام زفر رحمه الله قول دې.اودا قول د امام احمد رحمه الله هم دې.

(١) القول الراجح هو قول أبي حنيفة وزفر رحمهما الله كذا في فتح القدير(٤\٤) والخانية (٢٦٨\٢) والبحرالرائق (١٢١\٤) نقلاً عن القول الراجح (٣٦٣\١)-

وَقَالَ أَبُوْيُوْسُفَ وَمُحَمَّدٌ رحمهما الله اللِّعَانُ يَجِبُ بِنَفْيِ الْحَمْلِ او ابویوسف او محمد رحمهما الله فرمائی .چه د حمل په نفی کولوسره به لعان واجب وی إِذَا جَاءَتْ بِهِ لِأَقَلَّ مِنْ سِتَّةِ أَشْهُرٍ کله چې دې د شپږ میاشتو نه په کم کي بچې راوړو وَهُوَ مَعْنَى مَا ذُكِرَ فِي الْأَصْلِ اودا مطلب دې د هغه چې په مبسوط کي ذکردي

تشریح:- صاحبين رحمهما الله فرمائی .که دې ښځې د تهمت لګیدو د وخت نه روسته د شپږو میاشتونه په کمه موده کي ماشوم اوزیږولو.نودحمل د نفی کولوپه وجه به لعان واجب وی .اود شپږو میاشتو د کمې مودې قید په مبسوط کي ذکردې.دلیل دا دې.چه په کوم وخت کي دحمل نفی شوې وه.په هغه وخت کي دحمل وجود یقینی نه وو.خکه چې کیدای شوه.چه په نس کي ګیس وو.دهغې د امله نس پړسیدلې وه.اوپه هغې دحمل ګمان کړې شوې وو.نوخکه خاوند تهمت لګونکې نشی شمارلې.اوهرکله چې قذف ثابت نشو.نولعان به هم نشی کولې.

لِأَنَّا تَيَقَّنَّا بِقِيَامِ الْحَمْلِ عِنْدَهُ خکه چې د قذف په وخت موږ ته د حمل موجود کیدلو یقین اوشو فَيَتَحَقَّقُ الْقَذْفُ نو قذف متحقق شو.

تشریح:- اودصاحبینو رحمهما الله دلیل دا دې.چه هرکله د قذف د وخت نه روسته د شپږومیاشتو نه په کمه موده کي ماشوم پیدا شو.نوموږ ته یقین راغلو.چه د قذف په وخت کي حمل موجود وو.نوتهمت لګول موجود شو.اوچه تهمت لګول موجود شو.نوپه خاوند باندې لعان واجب شو.

قُلْنَا موږ دا خواب ورکوو إِذَا لَمْ يَكُنْ قَذْفًا فِي الْحَالِ يَصِيرُ چې هرکله تهمت فی الحال نشو.نوداسې شوه كَالْمُعَلَّقِ بِالشَّرْطِ لکه چې په یوشرط باندې معلق کړې شو فَيَصِيرُ كَأَنَّهُ قَالَ: إِنْ كَانَ بِكِ حَمْلٌ فَلَيْسَ مِنِّي. نو لکه چې ده اوونیل.که تاته حمل وی .نوهغه زما نه نه دې وَالْقَذْفُ لَا يَصِحُّ تَعْلِيقُهُ بِالشَّرْطِ [1] .حالانکه قذف په شرط باندې معلق کول صحیح نه دی .

تشریح:- زموږ خواب دا دې.چه د خاوند قول چې «حملك ليس مني» فی الحال قذف نه دې.خکه چې فی الحال د حمل وجود یقینی نه دې.نودا داسې شوه.لکه چې په شرط پورې معلق کړې شوې وی .او خاوند ونیلی وی. «إن كان بك حمل فليس مني» که ته حامله ئې.نوهغه حمل به زما نه نه وی .اوقذف په شرط پورې معلق کول صحیح نه دی .نوخکه دا قذف نه شو.اوچه قذف نشو.نولعان هم واجب نشو.

### د خاوند دقول «زنيت وهذا الحمل من الزنا» حکم

وَإِنْ قَالَ لَهَا زَنَيْتِ اوکه خاوند خپلې ښځې ته اوونیل وَهَذَا الْحَمْلُ مِنَ الزِّنَا تا زنا کړې ده.اودا حمل د زنا نه ( پیدا ) دې. تَلَاعَنَا نو دواړه به لعان کوی لِوُجُودِ الْقَذْفِ د قذف موجود کیدلو په وجه حَيْثُ ذَكَرَ الزِّنَا صَرِيحًا خکه چې ده د زنا لفظ په صراحت سره ذکرکړې دې. وَلَمْ يَنْفِ الْقَاضِي الْحَمْلَ او قاضی به حمل ( ددې سړی نه ) نفی کوی

حل اللغة: ① الحبل: حمل،امید،په رحم کي دننه بچې ② تمکن: پیدا کیدل، موجودیدل]

تشریح:- مسئله دا ده.که خاوند اوونیل.تا زنا کړې ده.او دا حمل د زنا ځنی دې.نوپه دې صورت کي به ښځه او خاوند دواړه لعان کوی .دلیل دا دې.چه ښکاره د زنا لفظ موجود دې.نوتهمت لګول موجود شو.① البته قاضی به ددې حمل دنسب نفی نه کوی .

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رحمه الله يَنْفِيهِ او امام شافعی رحمه الله فرمائی .چه حمل به نفی کوی لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نَفَى الْوَلَدَ

[1] القول الراجح: هو قول أبي حنيفة و زفر (رحمهما الله) كذا في فتح القدير (٤\١٤) و الخانية (٢\٢٦٨) والبحر الرائق (١٢١\٤) نقلا عن القول الراجح. (١\٣٦٣).



عَنْ هِلَالٍ لکه چې نبی کریم ﷺ د هلال نه د بچی نفی اوکړله. وَقَدْ قَذَفَهَا حَامِلًا. [1] حالانکه هلال رضی الله عنه دې ښځې ته د حامله کیدلو په حالت کي عیب لګولې وو

تشریح:- امام شافعی رحمه الله فرمائی .چه قاضی به د دې حمل دنسب نفی کوی . دلیل دا دې.چه نبی ﷺ دهلال رضی الله عنه نه د ښځې د بچی نفی کړې وه.حالانکه هلال رضی الله عنه په دغه ښځه د حمل په حالت کي د زنا تهمت لګولې وو.

وَلَنَا أَنَّ الْأَحْكَامَ لَا تَتَرَتَّبُ عَلَيْهِ او زموږ دلیل دادې.چه په حمل باندې حکم نه مرتب کیږی إِلَّا بَعْدَ الْوِلَادَةِ خود پیدا کیدلو نه روسته لِتَمَكُّنِ الِاحْتِمَالِ قَبْلَهُ خکه چې د پیداکیدلو نه وړاندې احتمال موجود دې.( چې شاید حمل نه وی )

تشریح:- زموږ دلیل دا دې.چه د ماشوم نفی کول دماشوم په احکامو کي یوحکم دې.اواحکام ماشوم مرتب کیږی د ولادت نه روسته وړاندې نه،خکه چې دولادت نه وړاندې شبه موجود وی . کیدای شی .چه حمل نه وی .

بلکه دویني نه نس ډکه شوې وی .

وَالْحَدِيثُ مَحْمُولٌ عَلَى أَنَّهُ عَرَفَ قِيَامَ الْحَبَلِ بِطَرِيقِ الْوَحْيِ او حدیث په دې خبره محمول دې.چه نبی کریم ﷺ د حمل موجود کیدل د وحی په ذریعه معلوم کړی وو.

تشریح:- دهلال رضی الله عنه دحدیث نه ځواب دا دې.چه نبی ﷺ ته د حمل وجود د وحی په ذریعه باندې معلوم شوې وو.اوپه دې باندې دلیل دا دې.چه نبی ﷺ اوفرمائیل.که ماشوم داسې داسې وی .نودهلال رضی الله عنه به وی .اوکه د داسې شکل وی .نود شریك بن شحماء به وی .اوښکاره خبره ده.چه داسې خبره د وحی په ذریعه کولې شی .

### دولد د نفی څه و صورتونه

وَإِذَا نَفَى الرَّجُلُ وَلَدَ امْرَأَتِهِ عَقِيبَ الْوِلَادَةِ أَوْ فِي الْحَالَةِ الَّتِي تُقْبَلُ التَّهْنِئَةُ وَتُبْتَاعُ آلَةُ الْوِلَادَةِ اوکه سړی د خپلې بی بی د بچی پیدا کیدلو نه پس، یا په کوم حالت کي چې مبارکباد قبلولې شی .یا د زیږیدل شیان (ځیزونه ) اخستې شی .نفی اوکړله صَحَّ نَفْيُهُ نو نفی کول صحیح ده وَلَاعَنَ بِهِ او ددې په وجه به لعان کوی . وَإِنْ نَفَاهُ بَعْدَ ذَلِكَ لَاعَنَ که ددې نه روسته ئې نفی اوکړله نو لعان به کوی وَثَبَتَ النَّسَبُ او نسب به ثابت پاتې کیږی هَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ [2] اودا د ابوحنیفه رحمه الله په نیز دی

حل اللغة: ① عقیب: روسته ② تهنئة: مبارکی ③ قصیرة: کمه ④ طویلة: اوږده ⑤ سکون: خاموشی ،چپوالې]

تشریح:- په دې عبارت کي د بچی د نفی څوصورتونه بیان شوی دی .① دپیدا کیدو سره دستی نفی اوکړی ② په هغه وخت کي نفی اوکړی .چه دبچی په پیدا کیدو مبارکی قبلولې شی .③ دولادت د سامان اخستلوپه وخت کي نفی اوکړی .په دې درې واړه صورتونوکي نفی صحیح ده.یعنی دبچی نسب دپلار نه نه ثابتیږی .اودنفی کولوپه وجه په خاوند باندې لعان واجبیږی .

④ اوکه دبچی نفی ددې حالتونونه روسته اوکړی .نولعان به کوی .اودبچی نسب دده نه ثابتیږی .① دادامام ابوحنیفه رحمه الله مذهب دې

وَقَالَ أَبُوْيُوْسُفَ وَمُحَمَّدٌ رحمهما الله او ابویوسف او امام محمد رحمه الله فرمائی . يَصِحُّ نَفْيُهُ فِي مُدَّةِ النِّفَاسِ چې د نفاس په موده کي نفی کول صحیح دی لِأَنَّ النَّفْيَ يَصِحُّ فِي مُدَّةٍ قَصِيرَةٍ خکه چې نفی کول په لږه موده کي صحیح کیږی .

[1] من حديث عبادة بن منصور رضی الله عنه أخرجه اسحاق بن راهويه رحمه الله في مسنده (نصب الراية ٣\٣٦٦)_

[2] القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في الدرالمنتقى (١\٤٦٨) وفتح القدير(٤\١٢٦) والدرالمختار(٢\٦٤١) والبحرالرائق (٤\١٢١) والهندية (١\٥١٩) نقلاً عن القول الراجح (١\٣٦٥)-

وَلَا يَصِحُّ فِي مُدَّةٍ طَوِيلَةٍ او په اوږده موده کې نه صحيح کيږي فَفَصَلْنَا بَيْنَهُمَا بِمُدَّةِ النِّفَاسِ نو موږ ددې دواړو په مينځ کې د نفاس موده فاصل جوړ کړو لِأَنَّهُ أَثَرُ الْوِلَادَةِ ځکه چې نفاس د ولادت اثر دې

**تشريح:-** صاحبين رحمهما الله فرمائي .چه دنفاس په موده کې دننه دننه د بچي نفی کول صحيح دی .دليل دا دې.چه په لږه موده کې د بچي نفی کول صحيح دی .اوپه ډيره موده کې نفی کول صحيح نه دی .اوپه لږه اوډيره موده کې حدفاصل د نفاس مودهٔ ده.يعنی دنفاس مودهٔ کمه ده.اوددې نه زياته مودهٔ زياته ده.اود نفاس مودهٔ حدفاصل ځکه مقرر کړې شو.چه نفاس د ولادت اثردې.اوپه مبسوط کې دی .چه موده دنفاس د ولادت د حالت پشان ده.يعنی په دې وخت کې نه لمونځ کولې شی .اونه روژه نيولې شی .(لکه څنګه چې په حالت د ولادت کې دا نشی کولې)

وَلَهُ اود ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې أَنَّهُ لَا مَعْنَى لِلتَّقْدِيرِ چې د مودې مقرر کاوه هيڅ مطلب نشته لِأَنَّ الزَّمَانَ لِلتَّأَمُّلِ ځکه چې زمانه خود غور او فکر لپاره وی وَأَحْوَالُ النَّاسِ فِيهِ مُخْتَلِفَةٌ اود خلګو حالتونه په دې کې مختلف دی فَاعْتَبَرْنَا مَا يَدُلُّ عَلَيْهِ نو موږ دداسې شی اعتبار اوکړو.چه په عدم نفی باندې دلالت کوی وَهُوَ قَبُولُهُ التَّهْنِئَةَ او هغه دده مبارکباد قبلول أَوْ سُكُوتُهُ عِنْدَ التَّهْنِئَةِ يا د مبارکبادئ په وخت دده خاموش پاتې کيدل، أَوِ ابْتِيَاعُهُ مَتَاعَ الْوِلَادَةِ يا دده د ولادت سامان اخستل أَوْ مُضِيُّ ذَلِكَ الْوَقْتِ يادا وخت په داسې حال کې تيرشو فَهُوَ مُمْتَنِعٌ عَنِ النَّفْيِ چې دې د نفی کاوه نه منع شو

**تشريح:-** دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې.چه دمودهٔ حد مقررولوڅه معنی نشته.ځکه چې وخت د سوچ فکر لپاره وی .اوپه سوچ اوغورفکر کې د خلګ وحالتونه مختلف وی .نوځکه موږ دهغه ځيزونواعتبارنه کوو.کوم چې د ماشوم په نفی نه کولوباندې دلالت کوی .اوهغه شيان (ځيزونه ) چې د ماشوم په نه نفی کولوباندې دلالت کوی .دماشوم په زيږيدل مبارکی قبلول،يادمبارکئ په وخت کې چوپ پاتې کيدل،يا د ولادت سامان اخستل،يا ددومره وخت په داسې حالت کې تيريدل چې خاوند د بچي نفی نه وی کړې.دا ټولې خبرې به دلالت کوی .چه خاوند دبچي په پيدا کيدو باندې خوشحاله دې.اودې خپل بچې ګڼړی .نوکه ددې نه روسته نفی کوی .نودا نفی کول صحيح نه دی .

وَلَوْ كَانَ غَائِبًا او که خاوند غائب دې وَلَمْ يَعْلَمْ بِالْوِلَادَةِ او هغه ته د ولادت علم نشته ثُمَّ قَدِمَ بيا دې راغئ تُعْتَبَرُ الْمُدَّةُ الَّتِي ذَكَرْنَاهَا عَلَى الْأَصْلَيْنِ نو هغه موده به معتبر وی .کومه چې موږ په اصلين باندې ذکر کړله.

**تشريح:-** که خاوند د ولادت په وخت کې موجود نه وو.اوده ته د ولادت علم هم نه وو.بيا دسفرنه واپس راغلو.نودامام ابوحنيفه رحمه الله په نيزبه د بچي په نفی کولوکې دهغه وخت اعتبارکولې شی .کوم چې د اصولوپه طوردوی بيان کړی دی . اود صاحبينو رحمهما الله په نيزبه د دوی د بيان شوې مودې مطابق وخت معتبر وی .

### په يوه خيټه کې د دوو ماشومانونه ديونفی کول

قَالَ امام قدوری رحمه الله فرمائی .وَإِذَا وَلَدَتْ وَلَدَيْنِ فِي بَطْنٍ وَاحِدٍ چې کله ښځې دوې [دوه] بچی د يوې خيټې ( حمل) نه راوړل فَنَفَى الْأَوَّلَ .نو خاوند د ړومبی بچی نفی اوکړله وَاعْتَرَفَ بِالثَّانِي اود دوهم بچی اقرار ئې اوکړلو. يَثْبُتُ نَسَبُهُمَا نود دواړو نسب به دده نه ثابت وی لِأَنَّهُمَا تَوْأَمَانِ خُلِقَا مِنْ مَاءٍ وَاحِدٍ ځکه چې دا دواړه بچی غبرګونی دی .د يو منئ نه پيدا شوی دی وَحُدَّ الزَّوْجُ او خاوند ته به حدقذف ور کولای شی لِأَنَّهُ أَكْذَبَ نَفْسَهُ بِدَعْوَى الثَّانِي ځکه چې ده د دوهم بچی د نسب دعوی اوکړله.خپل ځان ئې دروغجن ثابت کړو.

حل اللغة: ① بطن: نس ② العفة: پاکدامنی ③ توامان: برغګون ]



**تشريح:-** مسئله دا ده.که يوې ښځې په يوه نس دوې [دوه] ماشومان اوزيږول.يعنی د دواړو ماشومانو په مينځ کې د شپږو مياشتونه کمه مودهٔ وه.نوددې ښځې خاوند د اولنی بچی دنسب نفی اوکړله.اود دوهم ئې اقرار اوکړلو.نوددې کس ځخه به د دواړو بچونسب ثابتيږی .ځکه چې دواړه بچی غبرګون دی .هم د يوې منئ نه پيدا شوی دی .نودا څنګه کيدای شی .چه يوبچې دې دده وی .اوبل دې دده نه وی .بلکه د دواړوبچونسب به هم دده نه ثابتيږی .البته په خاوندباندې به حدقذف جاری کولې شی .ځکه چې ده د دوهم بچی د نسب دعوی اوکړله.اودخپل ځان تکذيب ئې اوکړلو.

وَإِنِ اعْتَرَفَ بِالْأَوَّلِ اوکه خاوند دړومبی بچی اقرار اوکړو وَنَفَى الثَّانِي اود دوهم بچی نفی ئې اوکړله يَثْبُتُ نَسَبُهُمَا نود دواړو نسب ( به دده نه ) ثابت وی .لِمَا ذَكَرْنَا د ذکرشوی دليل په وجه وَلَاعَنَ .او خاوند به لعان کوی لِأَنَّهُ قَاذِفٌ بِنَفْيِ الثَّانِي ځکه چې دده د دوهم بچی نفی کاوه سره ( ښځې ته) تهمت لګونکې دې وَلَمْ يَرْجِعْ عَنْهُ اود خپل قول نه ئې رجوع هم اونکړله

**تشريح:-** که خاوند د اولنی بچی د نسب اقراراوکړلو.اود دوهم بچی دنسب نه ئې انکاراوکړلو.نوپه دې صورت کې هم د دواړو بچو نسب هم دده نه ثابتيږی .دهغه دليل د امله کوم چې موږ وړاندې بيان کړلو.چه دواړه بچی غبرګون دی .البته دومره ده.چه په دې صورت کې په ده باندې لعان نشته.دليل دادې.چه په دې صورت کې خاوندتهمت لګولې دې.خوددې نه ئې رجوع نه ده کړې.

وَالْإِقْرَارُ بِالْعِفَّةِ سَابِقٌ عَلَى الْقَذْفِ اود ښځې د عفت او پاکدامنه کيدلو اقرار د تهمت لګولو نه وړاندې دې. فَصَارَ كَمَا إِذَا قَالَ إِنَّهَا عَفِيفَةٌ ګويا دده داسې اووئيل. چې دا پاکدامنه ده. ثُمَّ قَالَ هِيَ زَانِيَةٌ نوبيا ئې اووئيل.چه دا زناکاره ده وَفِي ذَلِكَ التَّلَاعُنُ كَذَا هَذَا اوپه داسې وئيلوکې خپلوکې لعان کول واجب دی .دغه ډول دلته کې هم دی .

**تشريح:-** په دې عبارت سره ديوسوال ځواب ورکوی .سوال دا دې.چه داولنی بچی د نسب د ثبوت اقرارد دوهم بچی د نفی کولونه روسته هم پاته دې.نوداسې به ګنړلې شی .چه د قذف نه روسته ابتداءً اقرارکړې شوې دې.اونفی ولداود قذف اقرارکولوپه صورت کې حد واجبيږی .نوپکارده.چه دلته هم حد واجب شوې وو.حالانکه تاسولعان واجبوئ.

ځواب،چه خاوند داولنی بچی د نسب اقراراوکړلو.نودښځې دعفت اقرارئې اوکړلو.اودعفت اقرارپه حقيقت کې په قذف باندې مقدم وی .اواعتبارحقيقت لره وی .نودا به داسې وی .چه خاوند اووائی .دا ښځه پاکدامنه ده.اوبيا اووائی .چه زناکاره ده.اوپه دې صورت کې لعان واجبيږی .نودغه ډول به دلته هم لعان واجب وی .ددې ځواب نه روسته مسئله بې غباره شوه.اللهم اغفرلی ولکاتبه جميل احمد عفی عنه (ولمژباړه آمين)

## باب العنين

ژباړه:- (دا) باب دعنين (وغيره په احکامو کښې ) دې.

**تشريح:-** مصنف رحمه الله په ماقبل کې دهغه خلګ واحکام بيان کړل.کوم چې د نکاح قابل وو.اودهغې نه روسته د طلاق احکام ذکرکړې شول.په دې باب کې دهغه خلګ وبيان دې.چه دنکاح قابل نه وی .

① اوپه محيط کې دی .چه عنين هغه کس دې.چه په آله کې ئې حرکت نه وی .لکه ګوته،که دا په بدن کې اولکولې شی .نونه نيغيږی اونه مړاوې کيږی .② په قاضی خان اومرغينانی کې ذکردی .چه عنين هغه کس دې.چه د آله باوجود په ښځوباندې قدرت نه لری .③ اوپه مغنی کې دی .چه عنين هغه کس دې.چه په داخلولوقادر نه وی .④ اوکه دې د ثيبه ښځې سره وطی کولې شی . او باکره سره نشی .يا دبعضو سره

وطي كولای شي اودبعضې سره نشي كولې.اودا خبره دځه مرض د امله پيدا شوې وي .ياد مورزاده (پيدائشي) كمزوريْ د امله يا د بوډاتوب د امله وي .نودا كس چې د كوموښځو سره وطي نشي كولې.دهغوی په حق كي عنين دي.خكه چې ددوی په حق كي مقصود فوت شوي دي.⑤ عنين هغه كس دي.چه هغه په ښځوياندې قدرت نشي موندې.

(۱ په عيني شرح هدايه كي ئې د عنين شناخت دا بيان كړي دي.چه په يوغټ لوښي كي اوبه واچولي شي اوعنين په هغې كي كينولي شي .كه دده عضوتناسل مړاوې شي .نودا كس عنين نه دې.اوكه مړاوي نشي بلكه په خپل حالت پاته وي .نودې به عنين وي .والله اعلم بالصواب

## عنين ته د يوكال مهلت وركول

**وَإِنْ كَانَ الزَّوْجُ عِنِّينًا** اوكه خاوند نامرد وي **أَجَّلَهُ الْحَاكِمُ سَنَةً** نو حاكم به ده ته ديوكال مهلت وركوی. **فَإِنْ وَصَلَ إِلَيْهَا فِيهَا** نوكه دې ښځې اورسيدو( صحبت ئې اوكړې شو). نوفبها ( ډيره ښه ده) **وَإِلَّا فَرَّقَ الْحَاكِمُ بَيْنَهُمَا** گنی حاكم به دې دواړوكي تفريق اوكړی . **إِذَا طَلَبَتِ الْمَرْأَةُ ذٰلِكَ** په دې شرط چې ښځه ددې مطالبه اوكړی.

**حل اللغة:** ① **الامتناع**: منع كول ② **الامساك**: ايسارول ③ **التفريق**: جلا كول ④ **العلة**: ناروغي (ناروغي (بيماری

**تشريح:**-صورت د مسئلې دا دې.چه خاوند نامرده وي .اوښځه دهغه نه د جداوالي مطالبه كوی .نوحاكم به ورته دعلاج لپاره د يوكال مهلت وركړی .اوديوكال ابتداء به دهغه وخت نه پيل كيږی .دكله نه چې ښځې دقاضي په عدالت كي مقدمه درج كړې وی .اوپه دې باندې فتوی ده.نوكه په يوكال كي دعلاج په ذريعه يا دالله تعالى په فضل دښځې سره په وطی كولوباندې قادرشو.نوالحمدلله په دې كي څه كلام نشته.اوكه دكال نه روسته هم نامرده وو.نوقاضی به دښځې په مطالبه سره د دواړو په مينځ كي بيلتون راولی .

**هكذا روي عن عُمَرَ وَعَلِيٍّ وَابْنِ مَسْعُودٍ رضي الله تعالى عنهم** (۱ هم دغه ډول عمر، علی او ابن مسعود﷛ نه نقل دی

**تشريح:**- اودا حضرت عمر،علي اوابن مسعود﷛ نه نقل دی . روايت دې.چه سعيد بن مسيب﷫ فرمائيلی دی.چه حضرت عمر﷛ د نامرده لپاره د يوكال مهلت فيصله كړې وه.(مصنف عبدالرزاق)

(۲اوامام محمد﷫ په كتاب الآثار كي روايت كړې دي.﴿ عن عمربن الخطاب﷛ أن إمرأة أتته فقالت لزوجها لا يصل إليها فأجله حولاً فلما إنقضى الحول فلم يصل إليها خيرها فاختارت نفسها ففرق عمر﷛ بينهما وجعلها تطليقة واحدة﴾ يعني يوه ښځه حضرت عمر﷛ ته راغله.اوعرض ئې اوكړلو.چه زما خاوند ماته نه نزدې كيږی .يعنی جماع راسره نه كوی .نونبیﷺ ورته د يوكال مهلت وركړلو.هركله چې يوكال تيرشو.اوهغه كس خپلې ښځې ته نشو تلې.نوحضرت عمر﷛ ورته دغه ښځې ته اختيار وركړلو.نوهغه ښځې خپل ځان مختاره كړلو.نوحضرت عمر﷛ په دغه دواړوكي تفريق اوكړلو.اودغه تفريق ئې طلاق بائن اوګرځولو.(عيني شرح هدايه)

(۳اوحضرت علي﷛ نه روايت دي.چه ﴿يؤجل العنين سنة فإن وصل إليها وإلا فرق بينـهما﴾ يعني سړی ته به يوكال مهلت وركولې شي .نوكه خاوند ښځې ته ورغلويعنی وطی ئې ورسره اوكړله.(نوډيره ښه ده) گنی د

---

۱) أما الرواية عن عمر﷛ فأخرجه عبدالرزاق في مصنفه وابن ماجه في مصنفه والدارقطني في سننه (۳۰۵۱۳) رقم (۲۲۱ وأما الرواية عن علي﷛ فأخرجه ابن أبي شيبة وأما الرواية عن ابن مسعود﷛ فأخرجه أيضاً ابن أبي شيبة(نصب الراية۳/۲۶۹)۔



دواړو په مينځ كي به تفريق كوی .(عيني شرح هدايه)

**وَلِأَنَّ حَقَّهَا ثَابِتٌ فِي الْوَطْءِ** اوخكه چې د ښځې حق په دې وطی كي ثابت دې **وَيُحْتَمَلُ أَنْ يَكُونَ الِامْتِنَاعُ لِعِلَّةٍ مُعْتَرِضَةٍ** او احتمال دادې.چه( د خاوند د ښځې حق ادا كاوه نه) منع كيدل د راپيښيدونكي بيماری په وجه وی **وَيُحْتَمَلُ أَنْ يَكُونَ لِآفَةٍ أَصْلِيَّةٍ** او( داهم) احتمال دې.چه دځه اصلی آفت په وجه وی **فَلَا بُدَّ مِنْ مُدَّةٍ مَعْرِفَةٍ لِذٰلِكَ** په دې وجه د دومره مودې كيدل ضروری دی .چه ددې شناخت كونكې وی **وَقَدَّرْنَاهَا بِالسَّنَةِ** او موږ دا د يوكال مقرر كړو **لِاشْتِمَالِهَا عَلَى الْفُصُولِ الْأَرْبَعَةِ** خكه چې دا موده په څلور واړه فصلونو باندې مشتمل وی

**تشريح:**- عقلی دليل دا دې.چه په وطی كي د ښځې حق ثابت دې.اود خاوند وطی نه كول ددې امله هم كيدای شی .چه څه وختی عارض راغلې وی .چه په علاج كولوسره لرې كيدای شی .اودا هم كيدای شی .چه په اصلی خلگ ت كي خلل وی .چه دهغې په وجه په جماع باندې قادرنه وی .اونه ترې جماع كيدای شی .نوددې خبرې معلومولو لپاره چې دا ناروغی (ناروغی (بيماری)) اصلی ده.كه عارضی ده.يوه مودهٔ پكار ده.اوموږ دا مودهٔ دمهلت وركولويوكال مقرر كړله.خكه چې په يوكال كي څلور فصلونه وی .سپرلې،خزان ګرمی اوېخنی .

**فَإِذَا مَضَتِ الْمُدَّةُ** نوهركله چې موده تيره شوه **وَلَمْ يَصِلْ إِلَيْهَا** او دې ښځې ته اونه رسيدو **تَبَيَّنَ أَنَّ الْعَجْزَ بِآفَةٍ أَصْلِيَّةٍ** نو ښكاره شوه.چه عجز دآفت اصليه په وجه دې **فَفَاتَ الْإِمْسَاكُ بِالْمَعْرُوفِ** نو امساك بالمعروف فوت شو **وَوَجَبَ عَلَيْهِ التَّسْرِيحُ بِالْإِحْسَانِ** او په ده باندې تسريح بالاحسان واجب شو **فَإِذَا امْتَنَعَ** نو هركله چې خاوند ( د تسريح بالاحسان نه) منع شو **نَابَ الْقَاضِي مَنَابَهُ** .نو قاضی به دده قائم مقام شی **فَفَرَّقَ بَيْنَهُمَا** او په دې دواړوكي به تفريق اوكړی **وَلَا بُدَّ مِنْ طَلَبِهَا** اود ښځې مطالبه كول ضروری دی **لِأَنَّ التَّفْرِيقَ حَقُّهَا** خكه چې تفريق ددې حق دې.

**تشريح:**- هركله چې يوكال تيرشي .اوبيا هم دې په جماع كولوقادرنشي .نودامعلومه به شی .چه دا عجزد اصلی آفت د امله دې.چه دهغې نه شفا موندل ناممكن دی .نودې كس امساك بالمعروف فوت كړلو.نوپه ده به د جلا كولوپه ذريعه تسريح بالاحسان واجب وی .خوچه هركله دا كس د تسريح بالاحسان نه منع شو.نوقاضی به دده قائم مقام شی .اوپه دواړوكي به تفريق اوكړی .چه دښځې نه ظلم لرې كړې شی .خكه چې دقاضی منصب د خلگ ونه ظلم لرې كاوه لپاره دې.

## فرقت به طلاق بائنه وی

**وَتِلْكَ الْفُرْقَةُ تَطْلِيقَةٌ بَائِنَةٌ** اودا فرقت به يو طلاق بائن وی **لِأَنَّ فِعْلَ الْقَاضِي أُضِيفَ إِلَى الزَّوْجِ** خكه چې د قاضی فعل د خاوند فعل اړخ ته منسوب شوې دې **فَكَأَنَّهُ طَلَّقَهَا بِنَفْسِهِ** ګويا خاوند دې ته پخپله طلاق وركړې دې

**تشريح:**- مسئله دا ده.① چه د نامرده اودهغه دښځې په مينځ كي چې قاضی كوم تفريق كړې وی .هغه طلاق بائن دې.امام مالك﷫ هم ددې قائل دې.

**وَقَالَ الشَّافِعِيُّ﷫ هُوَ فَسْخٌ** او امام شافعی﷫ فرمائيلی دی .چه دا فسخ د نكاح ده **لٰكِنَّ النِّكَاحَ لَا يَقْبَلُ الْفَسْخَ عِنْدَنَا** خو زموږ په نيز نكاح فسخ نه قبلوی .

**تشريح:**- امام شافعی﷫ فرمائی .چه دا فرقت فسخ دنكاح ده. دليل دا دې.چه دا بيلتون د ښځې داړخه راغلې دې.اوكوم بيلتون چې د ښځې داړخه وی .هغه فسخ كيدای شی طلاق نشی كيدې.خكه چې ښځې ته په شريعت كي دطلاق وركولوحق نشته.

**تشريح:**- زمونږدليل دا دې.چه دقاضی فعل به خاوندته منسوب كولې شی .لكه چې خاوند ورته په خپله طلاق وركړې دې.

۞اوامام شافعی رحمه الله دا قول چې دا فسخ دنکاح ده.ددې نه مورږ خواب ورکوو.چه نکاح یوخل پوره شی .نودپوره کیدو نه روسته هغه فسخ نه قبلوی .البته که عقددنکاح پوره شوې نه وی .نوفسخ قبلوی .لکه خیاربلوغ اوخیارعتق.

وَاِنَّمَا تَقَعُ بَائِنَةً او بائنه به خکه واقع کیږی لِأَنَّ الْمَقْصُوْدَ وَهُوَ دَفْعُ الظُّلْمِ عَنْهَا چې مقصود د ښځې نه ظلم لرې کول دی لَا يَحْصُلُ إِلَّا بِهَا حالانکه دا خبره صرف په طلاق بائن سره حاصلیږی .لِأَنَّهَا لَوْ لَمْ تَكُنْ بَائِنَةً خکه که دا بائنه نه وی تَعُوْدُ مُعَلَّقَةً بِالْمُرَاجَعَةِ نود خاوند په رجعت کاوه سره به دا بیا زوړنده وی .

تشریح:- پاتې شوه دا خبره چې دا تفریق طلاق بائن ولې دې.نودلیل دا دې.چه دقاضی په تفریق سره مقصود دښځې نه ظلم لرې کول دی .اودا مقصود په طلاق بائن سره حاصلیدې شی .خکه که دا تفریق طلاق بائن نشی .نود خاوند په رجعت کولوسره به دا ښځه زوړنده وی .خکه چې مقصود(وطی ) په فوت کیدو سره دا ښځه د میړه ښځه نه ده.اوچونکه د خاوند په نکاح کې ده.نومطلقه ورته نشی ونیلې.نود تفریق مقصود چې ظلم لرې کول دی .هغه نه حاصلیږی .

وَلَهَا كَمَالُ مَهْرِهَا اود ښځې لپاره به ددې پوره مهر واجب وی إِنْ كَانَ خَلَا بِهَا که خاوند ددې سره خلوت کړې وی فَإِنَّ خَلْوَةَ الْعِنِّيْنِ صَحِيْحَةٌ خکه چې د نامرد خلوت صحیح وی

تشریح:- که دې نامرده سړی دښځې سره خلوت کړې وی .نودده دښځې لپاره پوره مهرواجب دې.دلیل دا دې.چه نامرده سړی خلوت صحیح کړې وی .نوچه ښځې د آله د وجود سره مبدل (بضع) ورته اوسپارله.نوپه خاوند باندې دهغې بدل (مهر) واجب شو.

۞اوکه خلوت ئې نه وی کړې.نونیم مهرواجب دې.اوچونکه دامام شافعی رحمه الله په نیزد قاضی دا تفریق فسخ دنکاح ده.نوخکه د ښځې لپاره نه مهرشته.اونه نفقه.

وَيَجِبُ الْعِدَّةُ او عدت به واجب وی .لِمَا بَيَّنَّا مِنْ قَبْلُ د هغه دلیل په وجه کوم چې مورږ وړاندې بیان کړې دې

تشریح:- البته په دې ښځه باندې عدت په اتفاق سره واجب دې.دلیل وړاندې تیرشوې دې.چه درحم د مشغولیت گمان وی .ددې امله استحساناً د احتیاط لپاره عدت واجب کړې شو.

هٰذَا إِذَا أَقَرَّ الزَّوْجُ دا واړه هغه وخت دی .چه کله خاوند اقرار کړې وی أَنَّهُ لَمْ يَصِلْ إِلَيْهَا چې دې ( زه) دې ښځې ته نه یم رسیدلې

تشریح:- صاحب دهدایه رحمه الله فرمانی .چه نامرده ته دیوکال مهلت ورکول اودیوکال نه روسته تفریق کول په هغه وخت کې دی .چه خاوند دا اقراراوکړی .چه زه ښځې ته نشم ورتلې.

وَلَوِ اخْتَلَفَ الزَّوْجُ وَالْمَرْأَةُ فِي الْوُصُوْلِ إِلَيْهَا اوکه خاوند او ښځې، ښځې ته په رسیدلو(صحبت) کې اختلاف اوکړو فَإِنْ كَانَتْ ثَيِّبًا نوکه دا ښځه ثیبه وه. فَالْقَوْلُ قَوْلُهُ مَعَ يَمِيْنِهِ نود خاوند قول به یمین سره قبول وی

حل اللغة: ① الجبلة: زیږیدل ② السنة: کال ③ الثیبة: هغه ښځه چې جماع ورسره شوې وی ④ بکر: هغه ښځه چې جماع ورسره نه وی شوې ⑤ نکل: انکاری اوکړی ]

تشریح:- مسئله دا ده.که دښځې او خاوند په وطی کې اختلاف پیدا شو.هغه داسې چې خاوندد وطی مدعی دې.اوښځه ترې منکره ده.نوکه ښځه ثیبه وی .د خاوند قول به دیمین سره معتبر وی .

لِأَنَّهُ يُنْكِرُ اسْتِحْقَاقَ حَقِّ الْفُرْقَةِ خکه چې دا د جدایئ حق ثابتولو نه انکار کوی وَالْأَصْلُ هُوَ السَّلَامَةُ فِي الْجِبِلَّةِ او په مورزاده (پیدائشی ) خلگ ت کې اصل د آلې سلامتی ده

[...]:- دلیل دا دې.چه خاوندپه حقیقت کې د فرقت د ثبوت نه منکردې.اوښځه د فرقت داستحاق مدعی [...]ه دا چې اصل دا دې.چه آله دتناسل سالمه وی .نود خاوند قول چې ما وطی کړې ده.ددې مطلب دا



دې.چه دې د اله د سلامتیا قائل دې.اودښځې دا قول چې ما سره ئې وطی نه ده کړې.ددې مطلب دا دې.چه دا د آله دسلامتیا قائله نه ده.حاصل دا چې د خاوند قول دظاهری حالت موافق دې.اود ښځې قول د ظاهری حالت خلاف دې.اود چا قول چې دظاهرموافق وی .هغه مدعی علیه وی .اودچا قول چې دظاهرخلاف وی .هغه مدعی وی .نوخاوندمدعی اوښځه مدعی علیه شوه.اوچه گواهان نه وی .نود مدعی قول د یمین سره معتبر وی .نوخکه به د خاوند قول مع الیمین معتبر وی

ثُمَّ إِنْ حَلَفَ بیا که خاوند قسم اوخوړو. بَطَلَ حَقُّهَا نو د ښځې حق باطل شو وَإِنْ نَكَلَ اوکه انکار ئې اوکړو يُؤَجَّلُ سَنَةً نو ده ته به یوکال مهلت ور کولای شی

تشریح:- بیا که خاوند قسم اوخوړلو.نودښځې حق باطل شو.اوکه دقسم خوړلونه ئې انکار اوکړلو.نوده ته به دعلاج لپاره دیو کال مهلت ورکړې شی .

وَإِنْ كَانَتْ بِكْرًا اوکه باکره وی نَظَرَ إِلَيْهَا النِّسَاءُ نو ښځې دې دا اوگوری فَإِنْ قُلْنَ هِيَ بِكْرٌ نو که دې ښځو اوونیل.چه دا ښځه باکره ده. أُجِّلَ سَنَةً نو سړی ته به یوکال مهلت ور کولای شی لِظُهُوْرِ كَذِبِهِ خکه چې دده دروغ ښکاره شی

تشریح:- که ښځه باکره وی .نوښځې به دا اوگوری .که دغه ښځوگواهی ورکړله.چه دا باکره ده.نو خاوند ته به د یوکال مهلت ورکړې شی .خکه چې دخاونددروغ ثابت شو.

وَإِنْ قُلْنَ هِيَ ثَيِّبٌ اوکه ښځو اوونیل. چې ثیبه ده يَحْلِفُ الزَّوْجُ نود خاوند څخه به قسم اخستلې شی . فَإِنْ حَلَفَ لَا حَقَّ لَهَا نو که ده قسم اوخوړلو.نود ښځې لپاره به هیڅ حق نه وی . وَإِنْ نَكَلَ او که ده انکار اوکړو يُؤَجَّلُ سَنَةً نو ده ته به یو کال مهلت ورکولې شی .

تشریح:- اوکه دغه ښځواوونیل.چه دا ثیبه ده.نودغه خاوند ته به قسم ورکړې شی .خکه چې کیداې شی .ددې بکارت د بل څه امله نه زائله شوې وی .نوخکه به ددوی د گواهئ سره دقسم شرط لگولې شی .نوکه هغه قسم اوخوړلو.دهغې لپاره څه حق پاتې نشو.اوکه دقسم خوړولونه ئې انکاراوکړلو.نوده ته به یوکال مهلت ورکړې شی .

۞پاتې شوه دا خبره چې دا به څنگه پته لگی .چه ښځه ثیبه ده که باکره.نوصاحب دعنایه ددې معلومولو لپاره درې صورتونه ذکرکړی دی .① یودا چې د ښځې په شرمگاه کې به د چرگې وړه غونډې اگئ ورداخله کړې شی .که په آسانه ورداخله شوه.نوثیبه ده.اوکه په سختئ ورداخله شوه.نوباکره ده.② دوهم دا که ښځې په دیوال باندې بولې کولې شوې.نوباکره به وی .اوکه نشوې ئې کولې.نوثیبه به وی .③ دریمه دا چې اگئ ماته کړې شی .اودښځې په شرمگاه کې اوبیولې شی .که هغه دننه لاړله.نوثیبه به وی .اوکه لانړله.نوباکره به وی .والله اعلم

## د خاوند د مقطوع الذکرپه صورت کې دستی تفریق کول

وَإِنْ كَانَ مَجْبُوْبًا اوکه خاوند مقطوع الذکر وی فَرَّقَ بَيْنَهُمَا فِي الْحَالِ نو په دواړوکې به فی الحال ( فوراً) تفریق کولای شی إِنْ طَلَبَتْ په دې شرط چې ښځه مطالبه اوکړی لِأَنَّهُ لَا فَائِدَةَ فِي التَّأْجِيْلِ خکه چې په مهلت ورکولوکې هیڅ فائده نشته

تشریح:- مسئله که خاوند مقطوع الذکروی .نوقاضی به فی الحال د دواړو په مینځ کې تفریق اوکړی .خوپه دې شرط چې ښځه دتفریق مطالبه کوی .خکه چې د مقطوع الذکرنه د وطی کول ممکن نه دی .نوخکه ده ته په مهلت ورکولوکې څه فائده نشته.

وَالْخَصِيُّ يُؤَجَّلُ .او خصی ته به هم مهلت ورکولې شی . كَمَا يُؤَجَّلُ الْعِنِّيْنُ لکه څنگه چې عنین ته ور

كولاى شي لِأَنَّ وَطْأَهُ مَرْجُوٌّ ځكه چې دده نه هم د وطى كاوه اميد دې.

حل اللغة* ① التاجيل: نيټه وركول ② خصى: چې هګۍ ترې ورستې شوې وى ③ مرجو: اميد ئې كولې شى ]

تشريح:- آخته (چه اګۍ ئې وتلې شوى وى) ته به هم مهلت وركولې شى. لكه څنګه چې نامرده ته وركولې شى. ځكه چې دده نه هم دوطى كولواميد كيداې شى. يعنى آله تناسل موجود ده. كيداې شى. چه په څه وخت كې په كې د وطى كاوه توان پيدا شى.

## ديوكال نه روسته د عنين د جماع كولودعوى اودښځې انكار

وَإِذَا أَجَّلَ الْعِنِّينُ سَنَةً او هركله چې عنين ته يوكال مهلت وركړې شو وَقَالَ قَدْ جَامَعْتُهَا اوده اووئيل. چه ما دې ښځې سره جماع كړې ده وَأَنْكَرَتْ اودې ښځې انكار اوكړو نَظَرَ إِلَيْهَا النِّسَاءُ نو ښځې به دا ګورى فَإِنْ قُلْنَ: هِيَ بِكْرٌ نوكه ښځو اووئيل. چه دا باكره موجود ده. خُيِّرَتْ نو ښځې ته به اختيار وركولاى شى لِأَنَّ شَهَادَتَهُنَّ تَأَيَّدَتْ بِمُؤَيِّدٍ وَهِيَ الْبَكَارَةُ ځكه چې د ښځو ګواهى مؤيد دې. يعنى باكره كيدل قوى شو

تشريح:- مسئله دا ده. چه عنين ته يوكال مهلت وركړې شو. بيا هغه اووئيل. چه ما په يوكال كې دننه جماع كړې ده. اوښځه منكره وى. نونورې ښځې به دا ښځه ګورى. دښځودا كتل دوى [دوه] كرته دى. يوځل د مهلت وركولونه وړاندې اويوځل ديوكال تيريدو نه پس، بهرحال كه ښځود تاجيل د مودې نه روسته دا اوكتله. اودوى ګواهى وركړله. چه دا اوس هم باكره ده. نوقاضى به دغه ښځې ته اختياروركړى. كه هغې بيلتون ته ترجيح وركړله. نوقاضى به په دواړوكې تفريق اوكړى. دليل دا دې. چه دښځوپه ګواهۍ سره دهغې باكره كيدل قوى شو. نوځكه د سړى دا وينا چې ما جماع كړې ده. غلطه شوه.

وَإِنْ قُلْنَ: هِيَ ثَيِّبٌ. اوكه ښځو اووئيل. چه دا ثيبه شوې ده حَلَفَ الزَّوْجُ نود خاوند څخه به قسم اخستې شى فَإِنْ نَكَلَ نوكه ده انكار اوكړو خُيِّرَتْ نو ښځې ته به اختيار وركولې شى. لِتَأَيُّدِهَا بِالنُّكُولِ چې د خاوند په انكار سره ددې تائيد اوشو وَإِنْ حَلَفَ لَا تُخَيَّرُ او كه قسم ئې اوخوړلو. نو ښځې ته به اختيار نه وى.

تشريح:- كه ښځودا اوكتله. اوګواهى ئې وركړله. چه دا ثيبه ده. نو خاوند ته به قسم وركولې شى. كه هغه د قسم خوړلونه انكار اوكړلو. نوبيا به هم ښځې ته اختيار وركولې شى. ځكه چې د خاوند دقسم خوړلونه دانكارپه وجه د ښځې دعوى (چه ماسره ئې جماع نه ده كړې) تائيد اوشو. اوكه خاوند قسم اوخوړلو. نوښځې ته به اختيار نشى وركولې. ځكه چې دښځو په ګواهۍ وركولواود خاوند په قسم خوړلوسره ددې حق باطل شو.

## كه ښځه داول نه ثيبه وى. ددې حكم

وَإِنْ كَانَتْ ثَيِّبًا فِي الْأَصْلِ اوكه دا ښځه د وړاندې نه ثيبه وى فَالْقَوْلُ قَوْلُهُ مَعَ يَمِينِهِ نود خاوند قول به قسم سره قبول وى وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ اودا موږ وړاندې بيان كړى دى. فَإِنِ اخْتَارَتْ زَوْجَهَا نوكه ښځې خپل خاوند اختيار كړو لَمْ يَكُنْ لَهَا بَعْدَ ذَلِكَ خِيَارٌ. نو دې ته به ددې نه روسته اختيار نه وى لِأَنَّهَا رَضِيَتْ بِبُطْلَانِ حَقِّهَا ځكه چې دا دخپل حق په باطلولو باندې راضى شوې ده

تشريح:- كه ښځه داول نه ثيبه وى. نود خاوند قول به مع اليمين معتبر وى. دليل وړاندې تيرشوې دې. چه خاوند استحقاق فرقت منكردې. اوښځه مدعيه ده. اوقول د منكرمع اليمين معتبر وى. چه ګواهان نه وى. نوكه ښځې خپل خاوند اختيار كړلو. يعنى دنامردۍ باوجود ئې هغه سره اوسيدل قبول كړلو. نوددې نه روسته به ښځې ته د تفريق د مطالبه اختيار نه وى. ځكه چې ښځه په خپله دخپل حق په باطل كولوباندې راضى شوه.



وَفِي التَّأْجِيلِ تُعْتَبَرُ السَّنَةُ الْقَمَرِيَّةُ اود مهلت په موده كې قمرى (د سپوږمۍ) كال معتبر دې هُوَ الصَّحِيحُ [1] هم دا صحيح قول دې وَيُحْتَسَبُ بِأَيَّامِ الْحَيْضِ وَبِشَهْرِ رَمَضَانَ اود حيض ورځې اود رمضان مياشت به هم شمارلې شى لِوُجُودِ ذَلِكَ فِي السَّنَةِ ځكه چې په كال كې ددې وجود ضرورى دې وَلَا يُحْتَسَبُ بِمَرَضِهِ وَمَرَضِهَا اود سړى ناروغى (بيمارى)) اود ښځې ناروغى (ناروغى (بيمارى)) (ورځې) به نه شمارلې كيږى لِأَنَّ السَّنَةَ قَدْ تَخْلُو عَنْهُ ځكه چې كال كله هم د بيمارۍ نه نه خالى كيږى

تشريح:- صاحب دهدايه رحمة الله عليه فرمائى. ① چه نامرده ته ديوكال په مهلت وركولوكې به سپوږميز كال معتبروى. يعنى ٣٥٤ ورځې. ② اودامام ابوحنيفه رحمة الله عليه نه يوروايت دا نقل دى. چه شمسى كال به معتبر وى. يعنى ٣٦٥ ورځې. اوديوې ورځې څلورمه برخه اود يوې ورځې شلمه حصه. (عينى شرح هدايه)

③ اوديوكال د مودې څخه به دحيض اورمضان مياشت نشى جلا كولې. بلكه دكال په مودهٔ كې به دا ورځې هم شمارلې شى. ځكه چې په كال كې ددې ورځووجود ضرورى دې. البته د خاوند دبيمارۍ اودښځې دبيمارۍ ورځې به جلا كولې شى. دكال په مودهٔ كې به دا ورځې نشى حسابولې. ځكه چې دبيمارۍ د ورځووجود ضرورى نه دې. بلكه كله كلمه واړه كال د بيمارۍ نه خالى وى.

## په ښځه كې دعيب دصورت حكم

وَإِذَا كَانَ بِالزَّوْجَةِ عَيْبٌ اوكه په ښځه كې څه عيب وى فَلَا خِيَارَ لِلزَّوْجِ. نو خاوند ته د نكاح فسخ كاوه اختيار نشته

حل اللغة* ① الجذام: پمنتيا ② الجنون: ليونتوب ③ الرتق: چه د ښځې د متيازو د لارې نه سوا بله لار نه وى ④ القرن: قرن يعنى چې دښځې شرمګاه د هډوكى وغيره د امله دومره تنګه وى. چه په هغې كښې دسړى د عضوتناسل داخليدو لاره نه وى

تشريح:- مسئله دا ده. كه په ښځه كې څه عيب وى. نوزموږ په نيز خاوند ته د نكاح فسخ كولواختيارنشته ب

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رحمة الله عليه تُرَدُّ بِالْعُيُوبِ او امام شافعى رحمة الله عليه فرمائى. چه د پنځه عيبونو په وجه نكاح فسخ كيداې شى الْخَمْسَةِ وَهِيَ: الْجُذَامُ. او هغه (عيبونه) جذام (پمن)، وَالْبَرَصُ. برګې وَالْجُنُونُ ليونتوب وَالرَّتْقُ رتق وَالْقَرْنُ قرن دي

تشريح:- امام شافعى رحمة الله عليه فرمائى. چه د پنځوعيبونو په وجه نكاح فسخ كولې شى. هغه پنځه عيبونه دا دى. ①جذام ②برص يعنى هغه سپين والې چې د بدن په بعضې برخه باندې ښكاره شى. اوپه بعضې نه. اوكله كله په واړه بدن باندې ښكاره شى. ③ ليونتوب يعنى دعقل زوال. ④رتق يعنى چې دښځې د متيازود لارې نه سوا بله لاره نه وى. ⑤ قرن يعنى چې دښځې شرمګاه د هډوكى وغيره د امله دومره تنګه وى. چه په هغې كښې دسړى د عضوتناسل داخليدو لاره نه وى.

لِأَنَّهَا تَمْنَعُ الِاسْتِيفَاءَ حِسًّا أَوْ طَبْعًا ځكه چې دا مرضونه حساً يا طبعاً د نفع اخستلو نه مانع دى وَالطَّبْعُ مُؤَيَّدٌ. او طبيعت مؤيد دې بِالشَّرْعِ په شريعت سره قَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ فِرَّ مِنَ الْمَجْذُومِ نبى كريم ﷺ فرمائيلى دى. چه د جذامى (پمن) نه داسې اوتخته فِرَارَكَ مِنَ الْأَسَدِ لكه چې د شير (مزرى) نه تختې او زموږ دليل دادې

[1] القول الراجح هو غيرظاهر الرواية يعنى أنه يوجل سنة شمسية كذا فى فتح القدير (١٣٢/٤) والخانية (١٨٨/١) والكفاية (١٣٢/٤) وردالمحتار (٦٤٦/٢) والهندية (٥٢٣/١) نقلاً عن القول الراجح (٣٦٥/١)-

(1) هو غير ظاهر الرواية يعنى أنه يوجل سنة شمسية كذا فى فتح القدير (١٣٢/٤) و الخانية (١٨٨/١) والكفاية (١٣٢/٤) وردالمحتار (٦٤٦/٢) والهندية (٥٢٣/١) نقلا عن القول الراجح (٣٦٥/١).

تشریح:- دامام شافعي رحمه الله دلیل دا دی.چه دا عیبونه حسا یا طبعا د جماع لپاره مانع دي .خکه چي رتق اوقرن حساً مانع دی .خکه چي په دې دواړو صورتونوکي دخول ممکن نه دی.اوجذام،برص اوجنون طبعاً مانع دی . خکه چي دا عیبونه وي .نوطبیعت سلیمه د جماع کولونه نفرت کوي .

بیا دطبیعت په تائید کي یوحدیث هم موجود دی.① چه «فر من المجذوم فرارك من الأسد» یعني د جذامي نه داسې تخته.لکه خنګه چي د زمری نه دتختي.② په بل حدیث کي دی .چه یومجذوم حاضرشو.بیعت کولواراده ئي لره.نونبي ﷺ هغه ته په لار کي اووئیل.چه ته واپس شه.ماتاسو سره بیعت اوکړلو.③ اوحضرت عمر ﷺ یوه جذامي ښځه په طواف کي اولیدله.نوورته ئي اووئیل.ته په خپل کور کي ولې نه کیناستې.چه خلګو ته تکلیف ورکوې.نوهغه بیا کله هم طواف ته رانغله.پاتې شوه هغه واقعه چي نبي ﷺ دکوم مجذوم سره خوراك کړي وو.هغه جوړشو.نودا د نبي ﷺ معجزه وه.

**وَلَنَا أَنَّ فَوْتَ الِاسْتِيفَاءِ أَصْلًا بِالْمَوْتِ لَا يُوجِبُ الْفَسْخَ** چي د مرګ په وجه بالکل د نفع حاصلول فوت کیدل فسخ د نکاح نه واجبوی **فَاخْتِلَالُهُ بِهَذِهِ الْعُيُوبِ أَوْلَى** نو ددې عیبونو په وجه د نفع فوت کیدل به په درجه اولی نکاح نه فسخ کوی

تشریح:- زمونږ دلیل دا دی.چه د مرګ په وجه د وطی فوت کیدل د نکاح دفسخ سبب نه دی.که په ښځه خاوندکي یومړ شی .نومهرنه ساقطیږی .نوکه ددې عیبونوپه وجه په وطی کي خلل پیدا شی .نوپه خامخا به نکاح نه فسخ کیږی .

**وَهَذَا لِأَنَّ الِاسْتِيفَاءَ مِنَ الثَّمَرَاتِ** اودا خکه چي نفع حاصلول د نکاح ثمره ده **وَالْمُسْتَحَقُّ هُوَ التَّمَكُّنُ** او مستحق صرف د قابوموندلو دی **وَهُوَ حَاصِلٌ** اودا حاصل دی.

تشریح:- په دې عیبونوسره د نکاح نه فسخ کیدل ددې امله دی .چه د وطی دنکاح ثمره ده.اود خاوند استحاق صرف په قابوموندلوسره دی.اوپه دې ټولوصورتونوکي په وطی قابوموندی شی .جذام،برص او جنون خوښکاره دی .(چه دوی سره جماع کولې شی ) اورتق اوقرن کي چي سورې اوکړی .نوخپل کارکولې شی .(عنایه عیني شرح هدایه)

### په خاوند دجنون،برص اوجذام په صورت کي دښځي داختیارحکم

**وَإِذَا كَانَ بِالزَّوْجِ جُنُونٌ** اوکله چي خاوند ته جنون وی **أَوْ بَرَصٌ** یا برګې وی . **أَوْ جُذَامٌ** یا جذام وی **فَلَا خِيَارَ لَهَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُمَا اللَّهُ**[1] نود امام ابوحنیفه او امام ابویوسف رحمهما الله په نیز ښځي ته ( د نکاح فسخ کولو) اختیارنشته.

حل اللغة: ① الجب: چي ذکرئې پرې شوې وی ② العنين: نامرده،چه په جماع کاوه قادر نه وی ③ مخلة: خلل اچونکې]

تشریح:- مسئله دا ده.که خاوندلیونې یا پرې برص مرض وی .یامجذوم وی .① نودشیخینو رحمهما الله په نیزښځې ته دنکاح فسخ کولواختیارنشته.

**وَقَالَ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللَّهُ لَهَا الْخِيَارُ دَفْعًا لِلضَّرَرِ عَنْهَا** او امم محمد رحمه الله فرمائي .چه ښځې ته دا اختیار حاصل دی.د ښځې نه ضرر دفع کاوه دپاره، **كَمَا فِي الْجَبِّ وَالْعُنَّةِ** لکه په مقطوع الذکر او عنین کي ( چي حاصل دی) **بِخِلَافِ جَانِبِهِ لِأَنَّهُ مُتَمَكِّنٌ مِنْ دَفْعِ الضَّرَرِ بِالطَّلَاقِ** ددې په خلاف د خاوند طرف چي دی د طلاق په ذریعه ضررلرې

[1]) القول الراجح هو قول أبي حنيفة وأبي يوسف رحمهما الله كذا في الخانية (١٨٩\١) وفتح القدير(١٣٥\٤) والكفاية (١٣٥\٤) ورد المحتار(٦٤٨\٢) والهندية (٥٢٦\١)نقلاً عن القول الراجح (٣٦٨\١)-



کولوباندې قادر دی

تشریح:- امام محمد رحمه الله فرمائي .چه ښځې ته دنکاح فسخ کولواختیارشته. دلیل قیاس دی.یعني امام محمد رحمه الله د خاوند دا مرض دده په مقطوع الذکراوعنین باندې قیاس کوی .او د دواړو په مینځ کي علت مشترکه د ښځې نه ضرر لرې کول دی .یعني لکه څنګه چي دمقطوع الذکراوعنین په صورت کي دښځې نه ضرر لرې کولوپه وجه ښځې ته اختیارورکړې شوې دی.نودغه ډول که خاوند په دې مرضونوکي اخته وی .نودښځې نه د ضرر لرې کولوپه وجه دې دې ته اختیارورکړې شی .ددې په خلاف کي که د جذام وغیره مرضونه په ښځه کي موجود شی .نوسړی ته اختیارنه دی ورکړې شوې.خکه چي سړې د طلاق وغیره په ذریعه دخپل ځان نه د ضررپه لرې کولوباندې قادر دی.نوځکه ده ته د نکاح فسخ کولوداختیار ارتیا نشته.

**وَلَهُمَا أَنَّ الْأَصْلَ عَدَمُ الْخِيَارِ** اود شیخینو رحمهما الله دلیل دادی.چه ښځې ته خیار نه کیدل هم دا اصل دی **لِمَا فِيهِ مِنْ إِبْطَالِ حَقِّ الزَّوْجِ** خکه چي په دې کي د خاوند حق باطلول لازمیږی

تشریح:- دشیخینو رحمهما الله دلیل دا دی.چه اصل خودا دی.چه ښځې ته اختیارنه وی .خکه که ښځې ته د نکاح فسخ کولواختیار ورکړې شی .نوپه دې صورت کي دخاوندحق باطلیږی .

**وَإِنَّمَا يَثْبُتُ فِي الْجَبِّ وَالْعُنَّةِ** اود مقطوع الذکر او عنین په صورت کي خیار خکه ثابتیږی **لِأَنَّهُمَا يُخِلَّانِ بِالْمَقْصُودِ الْمَشْرُوعِ لَهُ النِّكَاحُ** چي دا دواړه په هغه مقصود کي مخل دی .د کوم لپاره چي نکاح مشروع شوې ده **وَهَذِهِ الْعُيُوبُ غَيْرُ مُخِلَّةٍ بِهِ** اودا عیبونه غیرمخل بالمقصود دی **فَافْتَرَقَا** نو توپیر ښکاره شو والله أعلم بالصواب او الله تعالی ته د صحیح زیاته پته ده.

تشریح:- پاتې شود مقطوع الذکراوعنین په صورت کي چي ښځې ته کوم اختیارملاؤ شوې دی.نوددې وجه دا ده.چه دا دواړه د نکاح مقصود اصلي یعني وطی فوت کوی .اوبرص وغیره عیوب بیخي دا مقصود نه فوت کوی .نوپه مقیس یعني لیونتوب وغیره ښځه عیبونه په مقیس علیه یعني مقطوع الذکر اوعنین باندې قیاس کول کي توپیر شو.نویوبل باندې قیاس کول صحیح نه دی .والله اعلم بالصواب

## باب العدة

ژباړه:- (دا) باب دعدت (داحکامو په بیان کښې) دی .

تشریح:- چونکه عدت د فرقت اثردی.اواثرد موثرنه روسته وی .نوځکه ئې اول د موثر(بیلتون) وجوه طلاق، خلع، لعان عنین وغیره ذکرکړل.اود دې ځائې نه د اثریعني عدت بیان دی.

دعدت سبب نکاح یا شبه دنکاح ده.اوددې شرط زوال دنکاح دی.اورکن ئې هغه حرمتونه دی .کوم چي د فرقت په وخت کي ثابتیږی .اوحکم ئې عدم جوازنکاح اونورممنوعات دی .

په لغت کي عدت دښځې دحیض د ورځوشمارلوته وائي .اوپه شریعت کي هغه ورځوته وائي .کومې چي په ښځه باندې د خاوند داړخه دملك متعه د زوال نه روسته دې باندې په انتظارکولوکي لازمیږی .خوپه دې شرط چي دا ښځه مدخول بها وی .یا ورسره خلوت شوې وی .یا ئې خاوند مړشوې وی .

دښځوپه اعتبارسره د عدت څلورقسمونه دی .① درې حیض،② درې میاشتې③وضع دحمل④ څلور میاشتې اولس ورځې.اولنې د ذوات الحیض عدت دی. دوهم د غیرذوات الحیض دریم د حامله او څلورم د متوفی عنها زوجها عدت دی.

### ددرې حیضوعدت تیرولوصورت

**وَإِذَا طَلَّقَ الرَّجُلُ امْرَأَتَهُ طَلَاقًا بَائِنًا أَوْ رَجْعِيًّا** او هرکله چي سړی خپلې ښځې ته طلاق بائن یا طلاق رجعي ورکړو **أَوْ وَقَعَتِ الْفُرْقَةُ بَيْنَهُمَا بِغَيْرِ طَلَاقٍ** یا دواړوکي فرقت د طلاق نه بغیر واقع شو **وَهِيَ حُرَّةٌ** حالانکه دا آزاده ښځه د هغه

ښځو خنې ده. مِمَّنْ تَحِيضُ چاته چې حيض راځي فَعِدَّتُهَا ثَلَاثَةُ أَقْرَاءٍ نووددې عدت درې حيضه دي

حل اللغة* ① براءة: خالي والې ② ينتظم: شامليږي ]

تشريح:- مسئله دا ده. كه يوكس خپلې ښځې ته طلاق بائن يا طلاق رجعي وركړلو. يا ددې دواړو په مينځ كې د طلاق نه بغيرفرقت واقع شي. اودا ښځه آزاده وي. اود ذوات الحيض څخه وي. نووددې عدت درې حيضه دي. مصنف رحمه الله ته پكار وو. چه په عبارت كې ئې «وقددخل بها» قيدذكركړې وو. ځكه چې دمدخول بها عدت واجب وي. دغيرمدخول بها واجب نه وي. خود «رجعيا» ذكركولونه روسته ددې قيدڅه ارتيا پاتې نشو. ځكه چې رجعت په مدخول بها كې وي. په غيرمدخول بها كې نه وي.

اوطلاق نه علاوه په بل څه وجه فرقت به دا وي. چه په خياربلوغ يا په خيارعتق سره ئې بيلتون واقع شوې وي. يا دعدم كفاءت په وجه يا دا چې په ښځه خاوند كې يودبل مالك شي. ددې په وجه نكاح فاسده شي. ياد ښځې د ارتداد په وجه. نوپه دې ټولوصورتونوكې فرقت بغيرطلاق واقع كيږي.

لِقَوْلِهِ تَعَالَى { وَالْمُطَلَّقَاتُ يَتَرَبَّصْنَ بِأَنْفُسِهِنَّ ثَلَاثَةَ قُرُوءٍ } ځكه د الله تعالى قول دې. (( وَالْمُطَلَّقٰتُ يَتَرَبَّصْنَ بِأَنْفُسِهِنَّ ثَلٰثَةَ قُرُوْءٍ )) يعنى طلاق موندونكى ښځې خپل نفسونه درې حيضه په انتظار كې اوساتي.

تشريح:- د دې دليل چې عدت درې حيضه دي. دالله تعالى دا ارشاد دې. (( وَالْمُطَلَّقٰتُ يَتَرَبَّصْنَ بِأَنْفُسِهِنَّ ثَلٰثَةَ قُرُوْءٍ )) ژباړه اوهغه ښځې چې طلاق ورته وركړې شوې وي. هغوى به خپل ځانونه درې حيضه ايساروى. دا آيت په عدت د طلاق كې ظاهرالمراد دې.

وَالْفُرْقَةُ إِذَا كَانَتْ بِغَيْرِ طَلَاقٍ اوكه د طلاق نه بغير فرقت وى فَهِيَ فِي مَعْنَى الطَّلَاقِ نودا د طلاق په معنى كې دې لِأَنَّ الْعِدَّةَ وَجَبَتْ لِلتَّعَرُّفِ عَنْ بَرَاءَةِ الرَّحِمِ فِي الْفُرْقَةِ الطَّارِئَةِ عَلَى النِّكَاحِ ځكه په نكاح چې كوم فرقت طارى خور وى. په هغې كې رحم د حمل نه پاكول پيژندلو لپاره عدت واجب شوې دې وَهٰذَا يَتَحَقَّقُ فِيهَا اودا معنى په داسې فرقت كې هم موندلې شي

تشريح:- اوپاتې شوچه بيلتون بغيرطلاقه نودا د طلاق په حكم كې دې. ځكه چې عدت ددې امله واجب دې. چه كوم بيلتون چې په نكاح كې راغلى وى. په هغې كې د رحم پاكې معلوم شي. اودا معنى يعنى د رحم پاكې معلوميدل دطلاق نه بغيرنه راځي. نوځكه فرقت بغيرطلاقه دطلاق په حكم كې دې.

وَالْأَقْرَاءُ الْحِيَضُ عِنْدَنَا او زموږ په نيز قروء نه حيض مراد دې. وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رحمه الله الْأَطْهَارُ او امام شافعى رحمه الله فرمائيلى دى. چه طهر مراد دې وَاللَّفْظُ حَقِيقَةٌ فِيهِمَا حالانكه لفظ د قروء دواړو معانوكې حقيقت دې. إِذْ هُوَ مِنَ الْأَضْدَادِ ځكه چې دالفظ د اضداد څخه دې كَذَا قَالَهُ ابْنُ السِّكِّيتِ هم دغه ډول ابن السكيت وئيلى دى. وَلَا يَنْتَظِمُهُمَا جُمْلَةً او ( دا لفظ ) دواړه معانو ته په يوځائې نه شامليږي. لِلِاشْتِرَاكِ ځكه چې ( دا لفظ ) مشترك دې

تشريح:- صاحب دهدايه رحمه الله د «قروء» په لفظ باندې بحث كوى. اوفرمائي. چه دا قروء لفظ دحيض اوطهردواړو په معنى كې حقيقت دې. ځكه چې دا لفظ د اضدادوڅخه دې. دلغت داامام ابن السكيت رائې هم دا ده. چونكه دا لفظ په دوو متضاد معانيوكې مشترك دې. ځكه په يو وخت كې دواړه معانى مراد نشي اخستلې. نودقروء دلفظ نه زموږ په نيزحيض مراد دې. اوداامام شافعى رحمه الله په نيزطهرمراد دې.

وَالْحَمْلُ عَلَى الْحَيْضِ أَوْلَى اود حيض په معنى باندې حمل كول غوره دى إِمَّا عَمَلًا بِلَفْظِ الْجَمْعِ په لفظ دجمع باندې عمل كاوه سره لِأَنَّهُ لَوْ حُمِلَ عَلَى الْأَطْهَارِ ځكه كه د طهر په معنى باندې محمول كړې شي وَالطَّلَاقُ يُوقَعُ فِي طُهْرٍ او طلاق په طهركې وركړې شي لَمْ يَبْقَ جَمْعًا نو جمع پاتې نشوه

تشريح:- صاحب دهدايه رحمه الله دخپل مذهب په تائيد كې څودلائل ذكركړى دى. ① يودليل دا دې. چه لفظ د



قروء دجمعې صيغه استعمال شوې ده. اوكمه درجه د جمعې درې دى. نودحيض معنى چې مراد واخستې شي. په لفظ دجمع باندې عمل كيداې شي. اوكه دطهرمعنى مراد واخستلې شي. نوپه جمع باندې عمل نشي كيدې. ځكه چې په طلاق كې سنت طريقه دا ده. چه په طهركې واقع كړې شي. نواوس دوې [دوه] صورتونه دى. يودا چې هغه طهرپه كوم كې چې طلاق واقع شوى وى دا به په عدت كې شمارلې شي. نوپه دې صورت كې پوره درې حيضه نه پاتې كيږي. بلكه دوې [دوه] طهرونه پوره اودريم طهرناقص پاتې كيږي. اوكه دا طهرپه عدت كې نشى شمارلې. نود دريونه زياتيږي. بهرحال په دواړوصورتونو كې په جمع باندې عمل نشي كيدې. اوكه د «قروء» نه حيض مراد واخستې شي. نوپه جمع باندې عمل كيداې شي. په دې طريقه چې دطهرپه زمانه كې طلاق وركړې. اوددې نه روسته بيا درې حيضه تيرشي.

أَوْ لِأَنَّهُ مُعَرِّفٌ لِبَرَاءَةِ الرَّحِمِ يا په دې وجه چې حيض د وينې پاكيدل ښائى وَهُوَ الْمَقْصُودُ او مقصود هم دا دې

تشريح:- دوهم دليل دا دې. چه دعدت مقصود د رحم پاكې معلومول دى. اودا مقصود په حيض سره حاصليږي په طهرسره نه.

أَوْ لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ وَعِدَّةُ الْأَمَةِ حَيْضَتَانِ [1] يا د نبى كريم ﷺ د فرمان په وجه چې د وينځې عدت دوې [دوه] حيضه دى فَيَلْتَحِقُ بَيَانًا بِهِ نو ( دا حديث ) د لفظ قروء بيان واقع شوې، او دې سره لاحق شوې دې.

تشريح:- دريم دليل دنبى ﷺ ارشاد دې. دوى ﷺ فرمائيلى دى. «طلاق الأمة تطليقان وعدتها حيضتان» نودا حديث ددې آيت بيان واقع شوې دې.

## د غيرذوات الحيض دعدت موده

وَإِنْ كَانَتْ لَا تَحِيضُ مِنْ صِغَرٍ أَوْ كِبَرٍ اوكه ښځه د هغه ښځو څخه ده. چه دې ته د ماشومتوب يا بوډئ توب په وجه حيض نه راځي. فَعِدَّتُهَا ثَلَاثَةُ أَشْهُرٍ نو د دې عدت درې مياشتې دى

حل اللغة* ① صغر: وركوټيوالې ② يسئن: نااميده شوى وى ③ نساء: زنانه ④ تضع: چې زيږوى ⑤ احمال: جمع د حمل ده، بوج، پيټې ]

تشريح:- چې دحيض نه راتګ د كم عمرئ د امله وى. يادا چې ښځه د نااميدئ (بوډاتوب) عمرته رسيدلې وى. نوددې امله حيض نه راځي. يا دا چې ښځه دعمرپه لحاظ سره بالغه شوې وى. دصاحبينو رحمهما الله په نيزچه د پنځلسو كالو وى. اودامام ابوحنيفه رحمه الله په نيزچه د اوولسو كالووى. خولاتراوسه پورې ئې حيض نه وى راغلې. د دې درې واړه قسمه ښځوعدت به درې مياشتې وى. كومې چې د درې حيضوقائم مقام دى.

لِقَوْلِهِ تَعَالَى { وَاللَّائِي يَئِسْنَ مِنَ الْمَحِيضِ مِنْ نِسَائِكُمْ } الْآيَةَ د الله تعالى دقول (( وَاللَّائِي يَئِسْنَ مِنَ الْمَحِيضِ مِنْ نِسَائِكُمْ )) په وجه يعنى هغه ښځې كومې چې د حيض نه نا اميده شوى دى. (ددوى ) عدت درې مياشتې دى وَكَذَا الَّتِي بَلَغَتْ بِالسِّنِّ اوهم دغه ډول هغه ښځې كومې چې د عمر په لحاظ سره بالغې دى وَلَمْ تَحِضْ او دوى ته حيض نه راځي. ( نو ددوى عدت هم درې مياشتې دې بِآخِرِ الْآيَةِ دليل ددې آيت آخر دې

تشريح:- دليل دا آيت دې. چه (( وَالّٰٓئِيْ يَئِسْنَ مِنَ الْمَحِيْضِ مِنْ نِّسَآئِكُمْ اِنِ ارْتَبْتُمْ فَعِدَّتُهُنَّ ثَلٰثَةُ اَشْهُرٍ وَّالّٰٓئِيْ لَمْ يَحِضْنَ )) يعنى ستاسوپه طلاقو شوو ښځوكې چې كومې ښځې (په وجه د زيات عمر) دحيض راتلونه نااميده شوى وى. كه تاسوته (د دوى دعدت په مقرركولوكښې) شبه وى. نود دوى عدت درې مياشتې دې. اودغه ډول كوموښځو ته چې دكم عمرئ په وجه حيض نه راځي. (مرشد تهانوى )

1) تقدم تخريجه فى الطلاق)_

﴿صاحب دفتح القدير رحمه الله فرمائی .چه كله ايت د قروء نازل شو.نوصحابه كرامو رضي الله عنهم اووئيل.چه د ذوات الحيض عدت خو موږ ته معلوم شو.خودا راته معلومه نه ده.چه كومې ښځې غيرذوات الحيض يادهغوی دعدت موږ ته علم نه وی .نودهغوی به څه حكم وی ؟په دې باندې آيت نازل شو.چه يعنی كه تاسوته د غيرذوات الحيض په عدت كې شك وی .اوتراوسه پورې درته معلومه نه وی .نوددوی عدت درې مياشتې دی .

وَإِنْ كَانَتْ حَامِلًا اوكه دا ښځه حامله وی فَعِدَّتُهَا أَنْ تَضَعَ حَمْلَهَا نو ددې عدت دادې.چه دا وضع د حمل اوكړی لِقَوْلِهِ تَعَالَى دليل د الله تعالى قول دې. {وَأُولَاتُ الْأَحْمَالِ أَجَلُهُنَّ أَنْ يَضَعْنَ حَمْلَهُنَّ} يعنی د حامله ښځې عدت دادې.چه خپل حمل او زيګوی .( اوغورخوی ).

تشریح:- اوكه ښځه حامله وی .نوددې عدت وضع د حمل ده.دليل دا آيت دې.((وَأُولَاتُ الْأَحْمَالِ أَجَلُهُنَّ أَنْ يَضَعْنَ حَمْلَهُنَّ)) يعنی دحامله ښځوعدت به ددغه حمل په زيږيدل باندې كيږی .(حضرت اقدس تهانوی رحمه الله د

مطلقې وينځې عدت

وَإِنْ كَانَتْ أَمَةً اوكه دا ښځه وينځه وی فَعِدَّتُهَا حَيْضَتَانِ نو ددې عدت دوې [دوه] حيضه دې. لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {طَلَاقُ الْأَمَةِ تَطْلِيقَتَانِ وَعِدَّتُهَا حَيْضَتَانِ} څكه نبی كريم ﷺ فرمائيلی دی .چه د وينځې طلاقونه دوې [دوه] دی .او ددې عدت دوې [دوه] حيضه دی

تشریح:- صورت د مسئلې دادې چې كه مطلقه وينځه وی نو ددې عدت به دوې [دوه] حيضه وی دليل د نبی كريم ﷺ ارشاد دې چې «طلاق الدمة تطليقتان وعدها حيضتان» (

وَلِأَنَّ الرِّقَّ مُنَصِّفٌ او څكه چې مملوك كيدل ( نعمت) نيمونكې دې وَالْحَيْضَةُ لَا تَتَجَزَّأُ اود يوحيض نصف نه كيږی فَكُمِّلَتْ نودا پوره شو فَصَارَتْ حَيْضَتَيْنِ نو دوې [دوه] حيضه شو

تشریح:- عقلی دليل دادې چې مملوكيت نعمت اوعذاب لره نصف كوی . دالله ﷻ ارشاد دې چې ((فَإِنْ أَتَيْنَ بِفَاحِشَةٍ فَعَلَيْهِنَّ نِصْفُ مَا عَلَى الْمُحْصَنَاتِ مِنَ الْعَذَابِ)) اويو حيض ويش كيداې نشی څكه هغه پوره كړې شو اودغه ډول به د مطلقه وينځې عدت دوې [دوه] حيضه وی .

وَإِلَيْهِ أَشَارَ عُمَرُ رضي الله عنه بِقَوْلِهِ اوهم دې اړخه ته حضرت عمر رضي الله عنه اشاره فرمائيلې ده لَوِ اسْتَطَعْتُ لَجَعَلْتُهَا حَيْضَةً وَنِصْفًا (1) كه مانه كيداې شوه.نو ددې عدت به مې يوحيض او نصف كړې وې

تشریح:- او ددې اړخ ته حضرت عمر رضي الله عنه اشاره كړې ده كه زما په وس كې وې نود وينځې عدت به مې يو نيم حيض ګرځولې وو.خو دا خبره زما په وس كښې نه ده. نو څكه ما دا دوې [دوه] حيضه كړل.

وَإِنْ كَانَتْ لَا تَحِيضُ اوكه وينځه داسې وی .چه دې ته حيض نه راځی فَعِدَّتُهَا شَهْرٌ وَنِصْفٌ نو ددې عدت يوه نيمه مياشت دې لِأَنَّهُ مُتَجَزِّئٌ څكه چې مياشت متجزی ( ټكړې) كيداې شی فَأَمْكَنَ تَنْصِيفُهُ عَمَلًا بِالرِّقِّ نو په رقيت باندې عمل كاوه سره مياشت نيمول ممكن دی .

تشریح:- اوكه دغه مطلقه وينځه د ذوات الحيض څنې وی .نوددې عدت يوه نيمه مياشت دې.څكه چې مياشت متجزی (ټكړې) كيديشی نو په رقيت باندې عمل كاوه لپاره موده نيمه كړې شوه.

**دمتوفی عنها زوجها عدت**

وَعِدَّةُ الْحُرَّةِ فِي الْوَفَاةِ اود آزادې ښځې عدت چې ددې خاوند وفات شوې وی أَرْبَعَةُ أَشْهُرٍ وَعَشْرٌ څلور مياشتې او

(1) أخرجه عبدالرزاق فی مصنفه(نصب الراية:۳۷۱\۱۳)_



لس ورځې دی

تشریح:- مسئله داده چې متوفی عنها زوجها عدت څلور مياشتې اولس ورځې دی . برابره كه دا ښځه د ذوات الحيض څنې وی اوكه دغير ذوات الحيض، كه مسلمانه وی اوكه كتابيه وی . كه بالغه وی اوكه نابالغه وی .كه مدخول بها وی اوكه غير مدخول بها وی . كه آئيسه وی اوكه غير آئيسه وی كه ددې خاوند آزاد وی
اوكه غير آزاد وی .

لِقَوْلِهِ تَعَالَى وَالَّذِينَ يُتَوَفَّوْنَ مِنْكُمْ وَيَذَرُونَ أَزْوَاجًا يَتَرَبَّصْنَ بِأَنْفُسِهِنَّ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ وَعَشْرًا څكه د الله تعالى فرمان دې. ((وَالَّذِينَ يُتَوَفَّوْنَ مِنْكُمْ وَيَذَرُونَ أَزْوَاجًا يَتَرَبَّصْنَ بِأَنْفُسِهِنَّ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ وَعَشْرًا)) وَعِدَّةُ الْأَمَةِ شَهْرَانِ وَخَمْسَةُ أَيَّامٍ اود وينځې عدت ( چې ددې خاوند وفات شوې وی ) دوې [دوه] مياشتې پنځه ورځې دې لِأَنَّ الرِّقَّ مُنَصِّفٌ څكه چې مملوك كيدل نيمونكې دې.

تشریح:- دليل دالله ﷻ دا آيت دې ((وَالَّذِينَ يُتَوَفَّوْنَ مِنْكُمْ وَيَذَرُونَ أَزْوَاجًا يَتَرَبَّصْنَ بِأَنْفُسِهِنَّ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ وَعَشْرًا)) يعنی په تاسو كې هغه خلګ چې خپلې بيبيانې پريږدی او وفات شی نوددوی بيبيانې به خپل ځانونه څلور مياشتې او لس ورځې په انتظار كې ساتی . اوكه متوفی عنها زوجها وينځه وی نو ددې عدت به دوې [دوه] مياشتې او پنځه ورځې وی څكه چې رقيت تنصيف راولی .

**دحامله عدت وضع دحمل ده**

وَإِنْ كَانَتْ حَامِلًا اوكه متوفی عنها زوجها حامله ده فَعِدَّتُهَا أَنْ تَضَعَ حَمْلَهَا نو ددې عدت دادې.چه دا خپل حمل اوزيګوی . لِإِطْلَاقِ قَوْلِهِ تَعَالَى وَأُولَاتُ الْأَحْمَالِ أَجَلُهُنَّ أَنْ يَضَعْنَ حَمْلَهُنَّ څكه د الله تعالى قول ((وَأُولَاتُ الْأَحْمَالِ أَجَلُهُنَّ أَنْ يَضَعْنَ حَمْلَهُنَّ)) مطلق دې

تشریح:- فرمائی چې متوفی عنها زوجها كه آزاده وی اوكه وينځه كه حامله وی نوددې عدت وضع د حمل ده.دليل دا دې.چه دالله تعالى ارشاد دې (((يحيض وَأُولَاتُ الْأَحْمَالِ أَجَلُهُنَّ أَنْ يَضَعْنَ حَمْلَهُنَّ))) او دا مطلق دې نودخپل اطلاق د امله متوفی عنها زوجها اوغيرمتوفی عنها زوجها ټولو ته ګډ دې.

وَقَالَ عَبْدُ اللهِ بْنُ مَسْعُودٍ رضي الله عنه او عبدالله بن مسعود رضي الله عنهما فرمائيلی دی . مَنْ شَاءَ بَاهَلْتُهُ أَنَّ سُورَةَ النِّسَاءِ الْقُصْرَى نَزَلَتْ بَعْدَ الْآيَةِ الَّتِي فِي سُورَةِ الْبَقَرَةِ (1) كوم كس چې غواړی .زه دده سره مباهله كولې شم.چه سورة نساء قصری ( سورة طلاق پ۲۸ ) دهغه آيت نه روسته نازل شوې دې.كوم چې په سورة بقره كې دې

تشریح:- عبدالله بن مسعود رضي الله عنه فرمائی .چه د سورة بقره آيت ((يَتَرَبَّصْنَ بِأَنْفُسِهِنَّ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ وَعَشْرًا)))) وړاندې نازل شوې دې. او سورة نساء قصری يعنی د سورة طلاق آيت (((وَأُولَاتُ الْأَحْمَالِ أَجَلُهُنَّ أَنْ يَضَعْنَ حَمْلَهُنَّ)) نه روسته نازل شوې دې.اوكه څوك په دې باندې مباهله كول غواړی .نو زه دې لپاره هم تيارېم.دابن مسعود رضي الله عنه مقصد دا وو.چه په اول كې دمتوفی عنها زوجها عدت لس ورځې اوڅلورمياشتې وو.كه حامله به وه اوكه غيرحامله،خوچه كله ((((وَأُولَاتُ الْأَحْمَالِ أَجَلُهُنَّ أَنْ يَضَعْنَ حَمْلَهُنَّ)))) آيت نازل شو.نود حاملې په حق كې دڅلورومياشتواولسو ورځو حكم منسوخ شو.اودهغې عدت وضع دحمل مقرر شو.برابره ده كه متوفی عنها زوجها وی اوكه نه وی .

وَقَالَ عُمَرُ رضی الله عنه.او حضرت عمر رضي الله عنه فرمائيلی دی لَوْ وَضَعَتْ كه ښځې په دې حالت كې وضع د حمل اوكړله وَزَوْجُهَا عَلَى سَرِيرِهِ چې ددې خاوند د مرګ په تخته پروت دې. لَانْقَضَتْ عِدَّتُهَا نو بيا هم ددې عدت تير شو .وَحَلَّ لَهَا أَنْ تَتَزَوَّجَ (1) او ددې ښځې لپاره حلال شو.چه ( دوهم خاوند سره) نكاح اوكړی .

(1) أخرجه البخاری فی تفسيرسورة الطلاق وفی تفسيرسورة الطلاق عنه (نصب الراية:۳۷۱\۱۳)_

تشریح:- اوابن مسعود رضي الله عنه د قول تائید دحضرت عمر رضي الله عنه د فرمان نه هم كيږی .چه دوی فرمائيلی دی .كه ښځه په داسې وخت كې وضع دحمل اوكړی .چه ددې خاوند په تخته پروت وی . يعنی دفن شوې نه وی .نوهم ددې عدت تيرشو.اوددې لپاره بل خاوند سره نكاح كول حلال دی .

## په مرض الوفات كې د مطلقه وارث جوړيدل اوعدت

وَإِذَا وَرِثَتِ الْمُطَلَّقَةُ فِي الْمَرَضِ اوكله چې مطلقه (دخاوندنه) په مرض الوفات كې وارثه شی. فَعِدَّتُهَا أَبْعَدُ الْأَجَلَيْنِ نوددې عدت به په دواړومدوكې اوږده موده وی وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ رحمهما الله (١) اودا حكم داامام ابوحنيفه اوامام محمد رحمهما الله په نيز دی.

تشریح:- صورت د مسئلې دا دی.چه يوكس په خپل مرض الوفات كې خپلې ښځې ته طلاق بائن وركړلو، يا نې ورته درې طلاقه وركړل.اوبيا هم په عدت كې مړشو.نودده ښځه به وارثه وی .اوددې ښځې عدت ابعدالاجلين دې.يعنی په دې ښځه دطلاق د امله درې حيضه تيرول واجب دی .اود خاوند دوفات په وجه څلورمياشتې اولس ورځې تيرول واجب دی .نوكه درې حيضه تيرشول.خوڅلورمياشتې اولس ورځې نه وې برابر شوې.نوونيلې به شی .چه تراوسه پورې عدت نه دې پوره شوې.تردې چې څلورمياشتې او لس ورځې تيرې شی .اوكه څلورمياشتې اولس ورځې تيرې شوې وې.خودرې حيضه نه وو پوره شوی .په دې طريقه چې ښځه ممتده د طهروه.نوهم دا به ونيلې شی .چه تراوسه پورې عدت پوره شوې نه دې.تردې چې درې حيضه راشی .اګرچه ښځې ته دڅوكالو انتظاركولو اړتيا پېښ شی .دا حكم دطرفينو رحمهما الله په نيز دی.

وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ رحمه الله ثَلَاثُ حِيَضٍ او امام ابويوسف رحمه الله فرمائيلی دی .چه درې حيضه (ددې عدت) دی وَمَعْنَاهُ إِذَا كَانَ الطَّلَاقُ بَائِنًا أَوْ ثَلَاثًا اوددې معنی دا ده.چه طلاق بائن وی .اويا درې طلاقه وی أَمَّا إِذَا كَانَ رَجْعِيًّا اوكه طلاق رجعی نې وركړې وی فَعَلَيْهَا عِدَّةُ الْوَفَاةِ بِالْإِجْمَاعِ نوپه اتفاق سره په دې باندې عدت وفات لازم دی

تشریح:- اوامام يوسف رحمه الله فرمانی چې ددې عدت صرف درې حيضه دی.علامه مرغينانی رحمه الله فرمانی چې دا اختلاف په هغه صورت كې دې چې دې ته طلاق بائن درې طلاقه وركړې شوی وی .اوكه طلاق رجعی ورته وركړې شوې وی نو په دې صورت كې به په اتفاق سره عدت د وفات يعنی څلور مياشتې او لس ورځې تيروی .

لِأَبِي يُوسُفَ رحمه الله أَنَّ النِّكَاحَ قَدِ انْقَطَعَ قَبْلَ الْمَوْتِ بِالطَّلَاقِ داامام ابويوسف رحمه الله دليل دا دې.چه دطلاق په وجه نكاح دمرګ نه وړاندې ختمه شوې ده وَلَزِمَتْهَا ثَلَاثُ حِيَضٍ او په ښځه باندې درې حيضه تيرول واجب دی ، وَإِنَّمَا تَجِبُ عِدَّةُ الْوَفَاةِ إِذَا زَالَ النِّكَاحُ فِي الْوَفَاةِ اودا به په هغه صورت كې واجبيږی چې نكاح د خاوند په وفات سره زائله شی

تشریح:- دامام يوسف رحمه الله دليل دادې چې نكاح خو دمرګ نه وړاندې په طلاق بائن سره منقطع شوې ده او چونكه د طلاق عدت درې حيضه دې نو ځكه په ښځه باندې درې حيضه تيرول واجب دی .اوپاتې شو عدت وفات نودا به په هغه صورت كې واجبيږی چې نكاح د خاوند په وفات سره زائله شی . حالانكه دلته داسې نه ده نو ځكه به په دې ښځه عدت وفات واجب نه وی .بلكه عدت طلاق به واجب وی .

إِلَّا أَنَّهُ بَقِيَ فِي حَقِّ الْإِرْثِ.البته دا خبره ده.چه د ميراث په حق كې نكاح پاته ده لَا فِي حَقِّ تَغَيُّرِ الْعِدَّةِ اوعدت بدليدو په حق كې پاته نه ده بِخِلَافِ الرَّجْعِيِّ په خلاف د طلاق رجعی لِأَنَّ النِّكَاحَ بَاقٍ مِنْ كُلِّ وَجْهٍ ځكه چې نكاح من كل وجه پاته پاتې كيږی

(٢) من حديث ابن عمر رضي الله عنهما اخرجه مالک فی الطلاق رقم ٨٤)_



تشریح:- په دې عبارت سره ديوسوال ځواب دې. سوال دادې چې هركله دطلاق بائن په وجه نكاح ختمه شوه نوپكار دی چې دې ته ميراث هم نه ملاويږی حالانكه امام يوسف رحمه الله هم دا دميراث مستحقه ګنړی .ځواب دادې چې دميراث په حق كې نكاح دصحابه كرامو رضي الله عنهم په اجماع سره پاته پاتې شوې ده. مطلب دادې چې دا امراة الفارده او وړاندې تير شوی دی چې د امراة الفارنه ميراث اوړل دصحابه رضي الله عنهم په اجماع سره ثابت شوی دی .نو ددې دليل په وجه به ښځه وارثه وی .په خلاف د طلاق رجعی ځكه چې په طلاق رجعی سره نكاح نه منقطع كيږی بلكه په هر اعتبار سره نكاح پاته وی .ددې په وجه كه دطلاق رجعی نه روسته د خاوند مرګ واقع شو نوپه دې ښځه په اتفاق سره عدت دوفات واجب دې.

وَلَهُمَا اودطرفينو رحمهما الله دليل دا دې. أَنَّهُ لَمَّا بَقِيَ فِي حَقِّ الْإِرْثِ چې هركله د ميراث په حق كې نكاح پاته پاتې كيږی يُجْعَلُ بَاقِيًا فِي حَقِّ الْعِدَّةِ احْتِيَاطًا نواحتياطاً دعدت په حق كې هم پاته پاتې كړې شوه فَيُجْمَعُ بَيْنَهُمَا نودواړه به جمع كولې شی .

تشریح:-اودطرفينو رحمهما الله دليل دادې چې هركله نكاح دميراث په حق كې پاته ده نو داحتياط په وجه به دعدت په حق كې هم پاته وی . ددې وجه دواړه عدتونه جمع كړې شول. ځكه چې دا ښځه په حقيقت كې بائنه ده.اود حكم په اعتبار سره متوفی عنها زوجها ده.

وَلَوْ قُتِلَ عَلَى رِدَّتِهِ اوكه خاوند په خپل ارتداد باندې قتل كړې شی حَتَّى وَرِثَتْهُ امْرَأَتُهُ .نودده ښځه به وارثه وی فَعِدَّتُهَا عَلَى هٰذَا الِاخْتِلَافِ نودهغې عدت هم په دې اختلاف باندې دې

تشریح:- په (ولو قتل علی ردته) سره دامام يوسف رحمه الله داستدلال نه ځواب وركوی .د امام يوسف رحمه الله استدلال دا دې چې خاوند كه مرتد شی اود ارتداد په وجه قتل كړې شی نو په دې صورت كې به مسلمانه ښځه وارثه وی . حالانكه په اجماع سره په دې باندې عدت وفات واجب نه دې ځكه چې دلته نكاح د ردت په وجه زائله شوې ده.دمرګ په وجه نه ده. و دغه ډول دلته په دې مسئله كې نكاح دطلاق بائن په وجه زائله شوې ده . دمرګ په وجه نه ده.نو ددې استدلال نه ځواب دادې چې دامسئله هم مختلف فيه ده. دطرفينو رحمهما الله په نيز عدت ابعدالاجلين دې.اود امام ابويوسف رحمه الله په نيز درې حيضه دی .

وَقِيلَ عِدَّتُهَا بِالْحَيْضِ بِالْإِجْمَاعِ اوونيلې شوی دی .چه ددې عدت په اتفاق سره هم حيض دې لِأَنَّ النِّكَاحَ حِينَئِذٍ مَا اعْتُبِرَ بَاقِيًا إِلَى وَقْتِ الْمَوْتِ فِي حَقِّ الْإِرْثِ چې دميراث په حق كې (دمرتدخاوند) دقتل پورې په دې صورت كې نكاح پاته نه ده پاتې كړې شوې لِأَنَّ الْمُسْلِمَةَ لَا تَرِثُ مِنَ الْكَافِرِ ځكه.ځكه چې مسلمانه ښځه دكافر نه ميراث نشی اوړی.

تشریح:- او دمشائخو رحمهم الله رائې داده چې ددې ښځې عدت په اجماع سره په حيض دې په دې صورت كې به دطرفينو رحمهما الله دارخه ځواب دا وی . چې په دې صورت كې نكاح د وراثت په حق پاته ده.

## دمرتد خاوند دمرګ پورې دطلاق رجعی په حالت كې د وينځې آزاديدل

وَإِذَا عَتَقَتِ الْأَمَةُ فِي عِدَّتِهَا مِنْ طَلَاقٍ رَجْعِيٍّ نوكه وينځه د خپل طلاق رجعی په عدت كې آزاده كړې شوه انْتَقَلَتْ عِدَّتُهَا نو ددې عدت منتقل كيږی إِلَى عِدَّةِ الْحَرَائِرِ او آزادې ښځې اړخ ته واپس كيږی لِقِيَامِ النِّكَاحِ مِنْ كُلِّ وَجْهٍ ځكه چې نكاح په هرشان قائم ده.

حل اللغة: ① الحرائر:جمع د اصيلې يعنی آصيله ښځه ② مبتوتة: هغه ښځه چې طلاق بائن ورته وركړې شوې وی

تشريح:- صورت د مسئلې دادې چې وينځې ته خپل خاوند طلاق رجعى ورکړلو اوپه عدت کې داخپل مولى آزاده که نو ددې عدت به د آزادو ښځو عدت ته منتقل کيږى يعنى که ذوات الحيض کې وى نو درې حيضه به تيروى اوکه دغير ذوات الحيض نه وى نودرې مياشتې به عدت تيروى .

دليل دادې چې په طلاق رجعى کې نکاح نه ختميږى بلکه من کل وجه نکاح پاته وى نو دا داسې شوه لکه چې مولى خپله منکوحه کيدو په حالت کښې آزاده کړې وى .

وَإِنْ أَعْتَقَتْ وَهِيَ مَبْتُوتَةٌ اوکه دا وينځه په داسې حالت کې آزاده کړې شوه.چه معتده بائنه ده أَوْ مُتَوَفًّى عَنْهَا زَوْجُهَا .يا،، متوفى عنها زوجها،، ده لَمْ تَنْتَقِلْ عِدَّتُهَا إِلَى عِدَّةِ الْحَرَائِرِ نو ددې عدت د آزادو ښځو عدت ته نه منتقل کيږى لِزَوَالِ النِّكَاحِ بِالْبَيْنُونَةِ أَوِ الْمَوْتِ ځکه چې نکاح د بينونت ( طلاق بائن) يا مرګ په وجه زائل شوې ده.

تشريح:- اوکه دا وينځه په داسې حالت کې آزاده کړې شى چې دا مطلقه بائنه وى يا ددې خاوند مړى شوې وى او دا د وفات عدت تيروى نو په دې صورت کې به ددې عدت د آزادو ښځو عدت ته نه منتقل کيږى. دليل دادې چې دطلاق بائن او دمرګ په وجه نکاح زائله شوه نودا داسې شوه لکه چې مولى دغير منکوحه په حالت کې آزاده کړې وى .

## آيسه په عدت کې دحيض والا کرځيدل

وَإِنْ كَانَتْ آيِسَةً اوکه ( مطلقه ښځه ) دخپل حيض نه نااميده وى فَاعْتَدَّتْ بِالشُّهُورِ نودې د مياشتو نه عدت پوره کول پيل کړل ثُمَّ رَأَتِ الدَّمَ بيا دې وينه اوکتله. انْتَقَضَ مَا مَضَى مِنْ عِدَّتِهَا نوکومه موده چې ددې په عدت کې تيره شوه.هغه ( عدت) مات شو وَعَلَيْهَا أَنْ تَسْتَأْنِفَ الْعِدَّةَ بِالْحَيْضِ او په دې به دسره ( دوباره) په حيض سره عدت تيرول واجب وى

حل اللغة* ① آيسة: هغه ښځه چې د حيض راتلو نه نااميده شوې وى ② الشهور:جمع د شهرد ه مياشت ③ الاستدامة: هميشوالي]

تشريح:- صورت دمسئلې دادې چې که مطلقه دحيض نه مايوسه وى او دې په دې مياشتو سره عدت تيرولو او اوس په دې مهال کې د حيض وينه راغله نو حکم دادې چې په مياشتو سره کوم عدت تيرکړې دې هغه باطل شو اوس به دا د سر نه په حيض سره عدت تيروى .

وَمَعْنَاهُ إِذَا رَأَتِ الدَّمَ عَلَى الْعَادَةِ او ددې مطلب دادې.چه کله دې وينه د عادت مطابق اوکتله.

تشريح:- صاحب دهدايه فرمائى چې دامام قدورى رحمه الله مراد دادې چې ددې ښځې د نااميدئ نه وړاندې کوم عادت وودهغې مطابق نې وينه اوليدله نو عدت باالشهور باطل شو ګنى نه باطليږى .

لِأَنَّ عَوْدَهَا يُبْطِلُ الْإِيَاسَ ځکه چې د وينې واپس کيدل نااميدى ختموى هُوَ الصَّحِيحُ هم دا صحيح ده.نو ښکاره شوه فَظَهَرَ أَنَّهُ لَمْ يَكُنْ خَلَفًا چې په مياشتو سره عدت تيرول ددې خليفه نه وو وَهَذَا لِأَنَّ شَرْطَ الْخَلَفِيَّةِ تَحَقُّقُ الْيَأْسِ اودا په دې وجه دى .چه د خليفه کيدلو شرط د مايوسئ متحقق کيدل دى وَذَلِكَ بِاسْتِدَامَةِ الْعَجْزِ إِلَى الْمَمَاتِ اودا تر مرګه پورې د عجز برابر موندلو په وجه کيږى

تشريح:- دليل دادې چې دعادت په طور دوينې راتګ دحيض نه مايوسى باطلوى . هم دا قول صحيح دې. نو ښکاره شوه چې دمياشت عدت دهغې خليفه نه دې. اودخليفه باطل کيدل ددې امله وو چې د خليفه کيدو شرط دا دې چې اصل يعنى د حيض نه مايوسى متحقق وى .اودابه هله متحقق وى چې تر مرګه پورې وى .خوچه کله ددې ښځې دعادت مطابق وينه راغله نو ددې عدت به په حيض سره وى . په مياشتو سره به نه وى .ځکه چې په اصل قدرت وى . نودخليفه څه اعتبار نه وى .



كَالْفِدْيَةِ فِي حَقِّ الشَّيْخِ الْفَانِي لکه د شيخ فانى په حق کې فديه.

تشريح:- لکه څنګه چې شيخ فانى ته د روژې په ځاى دفديه ور کاوه اجازت ورکړې شوې دې خوکه دا کس په روژه نيولو قادر شو ن دفديه حکم باطل شو. او دروژې قضاء راوړل به واجب وى دغه ډول که متيمم داوبو په استعمالو باندې قادر شو نو دتيمم حکم باطل شو.

## دعدت په مهال کې دحيض نه نااميده کيدل

وَلَوْ حَاضَتْ حَيْضَتَيْنِ اوکه ښځې ته دوې [دوه] حيضه راغلل ثُمَّ أَيِسَتْ بيادا د حيض نه نا اميده شوه تَعْتَدُّ بِالشُّهُورِ نو په مياشتو سره دې عدت شمار کړى . تَحَرُّزًا عَنِ الْجَمْعِ بَيْنَ الْبَدَلِ وَالْمُبْدَلِ. چې د بدل او مبدل دواړو جمع کاوه نه بچ شى .

تشريح:- مسئله داده که دښځې دوې [دوه] حيضه راغلل او بيا دا دحيض نه نااميده شوه نو په داسې صورت کې به د ابتداء نه ددرې مياشتو عدت پوره کوى ځکه چې په عدت پوره کاوکې يا حيض دې او يا مياشتې. او دا جائز نه دى چې دوې [دوه] دې حيضه وى اويو مياشت ورسره جمع کړى .او عدت پوره کړى ځکه چې په دې کې داصل اوبدل جمع کيدل راځى . اوپه شريعت کې داصل اوبدل جمع کيدل صحيح نه دى.

## د نکاح فاسده او وطى باالشبه حکم

وَالْمَنْكُوحَةُ نِكَاحًا فَاسِدًا او کومې ښځې سره چې نکاح فاسد اوکړې شوه. وَالْمَوْطُوءَةُ بِشُبْهَةٍ اوکومې ښځې سره چې په شبه کې وطى اوکړې شوه عِدَّتُهُمَا الْحَيْضُ فِي الْفُرْقَةِ وَالْمَوْتِ ددې دواړو عدت د فرقت اومرګ په حالت کې حيض دې

حل اللغة* ① الموطوءة: وطى کړې شوې ② الفرقة: جدائى ③ التعرف: پيژندګلو ④ براءة: خالى والي]

تشريح:- صورت دمسئلې دادې که چاسره نکاح فاسده اوشى مثلاً بغير ګواه نه نکاح اوشى يا وطى بالشبه اوشى مثلاً په دهوکه کې دخپلې ښځې نه سوا بلې ښځې ته بوتللئ شى .او وطى ور سره اوکړى نو په دې صورت کې به واطى ﴿وطى کـونکى﴾ باندې مهر واجب وى . او په ښځه عدت واجب دې. برابره ده که واطى مړ شو يا په دواړو کې تفريق کړې شوې وى نو که دا ښځه د ذوات الحيض ځنى وى او آزاده وى نوددې عدت درې حيضه دې اوکه وينځه وى نو ددې عدت دوې [دوه] حيضه دې اوکه دا ښځه غير ذوات الحيض ځنى وى او آزاده وى نو ددې عدت درې مياشتې دې. اوکه وينځه وى نو يوه نيمه مياشت ده.حاصل دا که واطى مړشوې وى نوهم ددې عدت به حيض سره وى اود حيض نه راتلو په صورت کې به مياشت ددې قائم مقام وى اوعدت وفات څلور مياشتې اولس ورځې به واجب نه وى .

لِأَنَّهَا لِلتَّعَرُّفِ عَنْ بَرَاءَةِ الرَّحِمِ ځکه چې عدت د رحم د براءت معلومولو لپاره دې لَا لِقَضَاءِ حَقِّ النِّكَاحِ د نکاح حق ادا کاوه لپاره نه دې وَالْحَيْضُ هُوَ الْمُعَرِّفُ او هم حيض شناخت کونکې دې.

تشريح:- دليل دادې چې ددې دواړه قسمه ښځو عدت د رحم دپاکيدو معلومولو لپاره دې. دنکاح حق ادا کاوه لپاره نه دې. ځکه چې دنکاح فاسد او وطى بالشبه څه حق نه وى اودرحم دپاکئ علم په حيض سره راځى نو ځکه د دواړو عدت په حيض سره مقرر کړې شو. او چې حيض نه راځى نو په دې صورت کې مياشتې د حيض قائم مقام دى .

خوکه دا سوال اوکړې شى چې دا مقصد خو په يو حيض يا يوې مياشتې سره حاصليږى نو د درې حيضو د وجوب څه اړتيا دې ددې ځواب دادې چې شبه نکاح د حقيقى سره لاحق کړې شوه اود درې حيضو تيرولو حکم ورکړې شو.

## دام ولد نه دمولی وفات کيدل او ددې عدت

**وَإِذَا مَاتَ مَوْلَى أُمِّ الْوَلَدِ عَنْهَا** اوکه د ام ولد مولا (ام ولد پريخوده او) مړشو **أَوْ أَعْتَقَهَا** يا ئې دا آزاده کړله **فَعِدَّتُهَا ثَلَاثُ حِيَضٍ** نو ددې عدت درې حيضه دی

**تشريح:**- صورت دمسئلې دادې (١) که دام ولد مولی مړشو يا مولی دا آزاده کړه نو ددې ام ولد عدت به درې حيضه وی .

**وَقَالَ الشَّافِعِيُّ** رحمه الله **حَيْضَةٌ وَاحِدَةٌ** او امام شافعی رحمه الله فرمائی .چه يو حيض دې **لِأَنَّهَا تَجِبُ بِزَوَالِ مِلْكِ الْيَمِينِ** ځکه چې د ام ولد عدت دملك يمين په زائل کاوه سره واجب شوې دې **فَشَابَهَتِ الْإِسْتِبْرَاءَ** .نو استبراء سره مشابه شوه

**تشريح:**- او امام شافعی رحمه الله فرمائی چې ددې عدت يو حيض دې. امام مالك او امام محمد رحمه الله هم ددې قائل دی .

دامام شافعی رحمه الله دليل دادې چې دملك يمين د زوال د امله په ام ولد باندې عدت واجب شو نو دا د استبراء مشابه شو او داستبراء لپاره يوحيض کافی وی . نو ددې لپاره به هم يو حيض کافی وی .

**وَلَنَا أَنَّهَا وَجَبَتْ بِزَوَالِ الْفِرَاشِ** او زمونږ دليل دادې.چه د ام ولد عدت د فراش زائل کيدو په وجه واجب شوې دې. **فَأَشْبَهَ عِدَّةَ النِّكَاحِ** نود نکاح د عدت مشابه شوه **ثُمَّ إِمَامُنَا فِيهِ عُمَرُ** رضي الله عنه بيا په دې حکم کې زمونږ امام حضرت عمر رضي الله عنه دې **فَإِنَّهُ قَالَ عِدَّةُ أُمِّ الْوَلَدِ ثَلَاثُ حِيَضٍ**[1] چې دوی اوفرمائيل.چه د ام ولد عدت درې حيضه دی .

**تشريح:**- زمونږ دليل دادې چې دام ولد عدت د زوال فراش د امله دې نودا دعدت نکاح مشابه شو او چونکه په عدت نکاح کې درې حيضه وی نو دلته به هم درې حيضه وی .

بيا په دې حکم کې زمونږ پيشوا حضرت عمر فاروق رضي الله عنه دې.دوئ فرمائيلی دی چې د ام ولد عدت به درې حيضه وی

**وَلَوْ كَانَتْ مِمَّنْ لَا تَحِيضُ** او که ام ولد داسې ښځه وی .چه دې ته حيض نه راځی . **فَعِدَّتُهَا ثَلَاثَةُ أَشْهُرٍ كَمَا فِي النِّكَاحِ** نوددې عدت درې مياشتې دی .لکه څنګه چې په نکاح کې کيږی .

**تشريح:**- اوکه دا ام ولد دغيرت ذوات الحيض څنی وی نو ددې عدت به درې مياشتې وی لکه څنګه چې په نکاح کې وی .

## دصغيردخپلې ښځې نه وفات کيدل

**وَإِذَا مَاتَ الصَّغِيرُ عَنِ امْرَأَتِهِ** اوکه نابالغ هلك خپله ښځه پريخوده (او) مړشو. **وَبِهَا حَبَلٌ** حالانکه دده دا ښځه حامله ده **فَعِدَّتُهَا أَنْ تَضَعَ حَمْلَهَا** .نو ددې عدت دادې.چه خپل حمل وضع کړی .(اوزيګوی) **وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ** رحمهما الله (٢) اودا د امام ابوحنيفه اود امام محمد رحمهما الله په نيز دی

**حل اللغة:** ① **احمال:** جمع د حمل،اميد ،په رحم کې دننه بچې ② **الحادث:** روستو پيدا شوې ③ **وضع الحمل:** زيږول د حمل ④ **التعرف:** پيژندګلو ⑤ **العلوق:** د ښځې رحم ته د سړی نطفه ورتلل او د بچی پيدا کيدو مراحل پيل کيدل]

---

١) غربه الزيلعی رحمه الله ثم نقل عن يحی بن أبی کثير رحمه الله أن عمروبن العاص رضي الله عنهما أمر أم الولد أعتقت أن تعتد ثلاث حيض (نصب الراية:٣٧٥١٣)_

٢) القول الراجح هو قول الطرفين رحمهما الله كذا فی الخانية (٢٧٠١٢) وفتح القدير(١٤٩١٤) والهندية (٥٣٠١١) والبحر الرائق (١٤١١٤)عن القول الراجح (٣٧٠١١)-



**تشريح:**- مسئله داده چې يو نابالغه هلك ښځه حامله پريښودله اودې تري مړشو. (١) نودطرفينو رحمهما الله په نيز ددې عدت وضع دحمل ده.

**وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ** رحمه الله **عِدَّتُهَا أَرْبَعَةُ أَشْهُرٍ وَعَشْرٌ** او امام ابويوسف رحمه الله فرمائيلی دی .چه ددې عدت څلور مياشتې او لس ورځې دې **وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ** (اوهم دا د امام شافعی رحمه الله قول دې) **لِأَنَّ الْحَمْلَ لَيْسَ بِثَابِتِ النَّسَبِ مِنْهُ** په دې وجه چه( ددې) حمل (نسب) د صغير نه ثابت نه دې **فَصَارَ كَالْحَادِثِ بَعْدَ الْمَوْتِ** نو داسې شوه.لکه د صغير د مرګ نه روسته (حمل ) پيدا شوې وی

**تشريح:**- دامام ابويوسف رحمه الله په نيز ددې عدت څلورمياشتې اولس ورځې دې او دا دامام شافعی قول هم دې.

دامام ابويوسف رحمه الله دليل دادې چې دا حمل د صغير نه ثابت نه دې نو دا داسې شوه لکه چې دصغير دمرګ نه روسته دا حامله شوې وی .او په دې صورت کې په اتفاق سره عدت څلور مياشتې اواولس ورځې دی . نودغه ډول په ذکر شوې مياشتې کې هم څلور مياشتې او لس ورځې پوره کول ضروری دی .

**وَلَهُمَا** اود طرفينو رحمهما الله دليل دادې **إِطْلَاقُ قَوْلِهِ تَعَالَى {وَأُولَاتُ الْأَحْمَالِ أَجَلُهُنَّ أَنْ يَضَعْنَ حَمْلَهُنَّ}** **وَلِأَنَّهَا مُقَدَّرَةٌ بِمُدَّةِ وَضْعِ الْحَمْلِ فِي أُولَاتِ الْأَحْمَالِ** چې د حمل والا ښځوکې د عدت اندازه په وضع د حمل باندې ده **قَصُرَتِ الْمُدَّةُ أَوْ طَالَتْ** که لږه موده وی . اوکه زياته (موده وی **لَا لِلتَّعَرُّفِ عَنْ فَرَاغِ الرَّحِمِ** اودا) ددې لپاره نه دې.چه د رحم د حمل نه خالی کيدل معلوم کړې شی **لِشَرْعِهَا بِالْأَشْهُرِ مَعَ وُجُودِ الْأَقْرَاءِ** ځکه چې د وفات عدت د حيض موجود پاتې کيدو کې په مياشتو سره شوې دې **لَكِنْ لِقَضَاءِ حَقِّ النِّكَاحِ** بلکه د نکاح حق ادا کاوه لپاره دې. **وَهَذَا الْمَعْنَى يَتَحَقَّقُ فِي الصَّبِيِّ** اود نکاح حق اداکول په صغير ماشوم کې هم موندلې شی **وَإِنْ لَمْ يَكُنِ الْحَمْلُ مِنْهُ** .اګرچه دده د نطفې نه حمل نه وی (پيداشوې)

**تشريح:**- د طرفينو دليل دادې چې الله ﷻ مطلقا فرمائيلی دی چې دحامله ښځو عدت وضع دحمل دې. برابره ده که هغه عدت دطلاق وی اوکه دوفات وی . او برابره ده که حمل د خاوند وی اوکه دغير خاوند وی .نودآيت دخپل اطلاق د امله دنابالغه هللك ښځې ته هم ګډ دې. ځکه چې دا هم حامله ده.اګر چې ددې نسب ثابت نه دې. (٢) او دريم دادې چې دحامله ښځو په اړه کې دعدت وفات اندازه لګولې شوې ده. په موده د وضع دحمل برابر ده که داموده کمه وی اوکه زياته وی . او ددې مودې مقصد دنکاح حق پوره کول دی .دحمل نه د رحم خالی معلومول نه دی ددې وجه داده چې عدت وفات د حيض په موجودګئ کې دمياشتونه پيل کيږی .نوثابته شوه چې ددې عدت مقصد دنکاح حق ادا کول دی . درحم د فراغت معلومول نه دی .او دا معنی يعنی دنکاح حق پوره کول په ماشوم کښې هم موجوديږی .اګر چې حمل دده نه ثابت نه وی .

**بِخِلَافِ الْحَمْلِ الْحَادِثِ** په خلاف دداسې حمل کوم چې (د خاوند د وفات نه پس) پيدا شوی وی . **لِأَنَّهُ وَجَبَتِ الْعِدَّةُ بِالشُّهُورِ** ځکه چې عدت په مياشتو سره واجب شوې دې **فَلَا تَتَغَيَّرُ بِحُدُوثِ الْحَمْلِ** نو بيا به په حمل پيدا کيدو سره نه متغير کيږی

**تشريح:**- په دې عبارت کې دامام ابويوسف رحمه الله د قياس ﴿كالحادث بعد الموت﴾ نه ځواب ورکوی دځواب حاصل دادې چې کوم حمل دمرګ په وخت کې حمل نه وی نوپه دې کې ابتداء د عدت د مياشتو نه کيږی چې دنکاح حق ادا شی .اوس که روستو حمل ښکاره شی نود حدوث حمل د امله عدت نه متغير کيږی .

**وَفِيمَا نَحْنُ فِيهِ كَمَا وَجَبَتْ** او زمونږ په دې مسئله کې چې کله عدت واجب شو **وَجَبَتْ مُقَدَّرَةً بِمُدَّةِ الْحَمْلِ** نو هله د حمل مودې سره واجب شو **فَافْتَرَقَا** نو( په دواړه مسئلوکې ) توپير ښکاره شو الموت. **وَلَا يَلْزَمُ امْرَأَةُ الْكَبِيرِ إِذَا حَدَثَ لَهَا الْحَبَلُ بَعْدَ الْمَوْتِ** .( او په دې باندې) د بالغ سړی د ښځې اعتراض نه لازميږی .چه کله د بالغ د مرګ نه

روسته دده د ښځې حمل ښکاره شوې وی لِأَنَّ النَّسَبَ يَثْبُتُ مِنْهُ .ځکه( چې د حمل) نسب ددې بالغ نه ثابتیږی فَكَانَ كَالْقَائِمِ عِنْدَ الْمَوْتِ حُكْمًا نو ګویا حکماً د مرګ په وخت موجود وو

تشریح:- او په دې مسئله کې د عدت ابتداء دحمل د مودې نه شوې ده ځکه چې دحامله ښځو عدت دا وی چې هغوئ خپل حمل اوزیږوی نو په مقیس او مقیس علیه کې توپیر ښکاره شو نو ځکه یو بل باندې قیاس کول صحیح نه دې.

خو په دې باندې اشکال راځی . هغه دا چې دبالغ سړی په ښځه کې عدت ولې متغیر کیږی . یعنی که بالغ سړې مړ شی اویه دغه وخت کې دده دښځې حمل نه وی ښکاره شوې تردې چې دمیاشتو په حساب پرې عدت تیرول لازم شو نودا حمل داسې شو لکه چې دمرګ په وخت موجود وو.

وَلَا يَثْبُتُ نَسَبُ الْوَلَدِ فِي الْوَجْهَيْنِ .اود بچې نسب په دواړو صورتونو کې نه ثابتیږی .لِأَنَّ الصَّبِيَّ لَا مَاءَ لَهُ ځکه چې د صغیر نطفه نه وی فَلَا يُتَصَوَّرُ مِنْهُ الْعُلُوقُ .نو دده د اړخه به حمل هم نه متصور کیږی وَالنِّكَاحُ يَقُومُ مَقَامَهُ فِي مَوْضِعِ التَّصَوُّرِ او نکاح په موضع د تصور کې د وطی قائم مقام ده.

تشریح:- صاحب د قدوری رحمه الله فرمائی چې دنابالغه نه دبچې نسب په دواړه صورتونو کې نه ثابتیږی . برابره ده که حمل دمرګ په وخت کې موجود وو اوکه نه وو.ځکه چې دنابالغه نطفه نه وی .نودده داړخه به حمل هم متصور نه وی .

خوکه څوك دا ووایې چې نکاح موجوده ده. نودنبی کریم ﷺ دقول ﴿ الولد الفراش﴾ په وجه به نکاح د وطی قائمقام کړې شی . نو ځواب به داوی چې نکاح د وطی قائمقام په هغه وخت کې وی چې دې سره وطی کول ممکن وی اودلته دنابالغه نه وطی کول غیر متصور دی . نو نکاح به دوطی قائمقام نه وی .

## په حالت دحیض کې دطلاق ورکولو صورت کې عدت

وَإِذَا طَلَّقَ الرَّجُلُ امْرَأَتَهُ فِي حَالَةِ الْحَيْضِ او هرکله چې سړی خپلې ښځې ته په حالت د حیض کې طلاق ورکړو لَمْ تَعْتَدَّ بِالْحَيْضَةِ الَّتِي وَقَعَ فِيهَا الطَّلَاقُ .نو ښځه به دا حیض په کوم کې چې طلاق واقع شوې دې.په عدت کې نه شماری

حل اللغة: ① كوامل جمع د كاملة، پوره ]

تشریح:- مسئله دا ده که سړی خپلې ښځې ته په حالت دحیض کې طلاق ورکړو.نوهغه حیض په عدت کې نشی شمارلې په کوم کې چې طلاق واقع شوې وی .

لِأَنَّ الْعِدَّةَ مُقَدَّرَةٌ بِثَلَاثِ حِيَضٍ كَوَامِلَ ځکه چې عدت پوره په درې حیض سره مقدر کړې شوې دې. فَلَا يُنْقَصُ عَنْهَا نودې ځخه به کمی نشی کولې

تشریح:- دلیل دا دې چې په اجماع سره په عدت کې پوره درې حیضه تیرول ضروری دی .نوځکه به په دې کې کمې نشی کولې

## دمعتده دوطی بالشبه په صورت کې عدت

وَإِذَا وُطِئَتِ الْمُعْتَدَّةُ بِشُبْهَةٍ اوکومه ښځه ( چې د طلاق بائن) په عدت کې وه که دې سره وطی بالشبه اوکړې شوه فَعَلَيْهَا عِدَّةٌ أُخْرَى نو په دې ښځه به دوهم عدت واجب وی وَتَدَاخَلَتِ الْعِدَّتَانِ دواړه عدتونه به په یوبل کې داخل وی وَيَكُونُ مَا تَرَاهُ الْمَرْأَةُ مِنَ الْحَيْضِ مُحْتَسَبًا مِنْهُمَا جَمِيعًا او ښځه چې کوم حیض ګوری .هغه به په دواړو عدتونو کې شمار وی وَإِذَا انْقَضَتِ الْعِدَّةُ الْأُولَى او هرکله چې ړومبې عدت پوره شی . وَلَمْ تُكْمِلِ الثَّانِيَةَ



حالانکه دوهم عدت نه دې پوره شوې فَعَلَيْهَا تَمَامُ الْعِدَّةِ الثَّانِيَةِ نو په ښځه باندې دوهم عدت پوره کول واجب دی وَهَذَا عِنْدَنَا .اودا ( حکم) زموږ په نیز دې

حل اللغة: ① كف: بندیز ② التزوج: واده کول ③ الخروج: د کور نه وتل ④ فراغ: خالی والې]

تشریح:- مسئله داده که په یو ښځه باندې دوې [دوه] عدتونه واجب شی نوددې دوې [دوه] صورتونه دی .نودا دوې [دوه] عدتونه به یا د دوؤ سړو نه وی یا دیو سړی نه.که دیو سړی نه وی نوددې صورت به دا وی ① چې یوکس خپلې ښځې ته درې طلاقه ورکړل او بیا ئې دا حلاله اوګنړله اونکاح ئې ورسره اوکړه.او وطی ئې اوکړه. ② یا ئې حلاله اوګنړله اومطلقه ثلاثه سره ئې وطی اوکړه ③یا ئې دمطلقه بینه سره په عدت کې وطی اوکړه نو په دې صورت کې په اتفاق سره په دواړو عدتونو کې تداخل کولې شی .

اوکه دواړه عدتونه ددوؤ سړو نه وی نو بیا ددې دوې [دوه] صورتونه دی . یا به د دواړوعدتونو جنس یو وی اویا به مختلف وی .که د دواړو جنس مختلف وو.مثلاً متوفی عنها زوجها سره په شبه سره وطی شوې وه. نوددې حکم په راروانه مسئله کې ذکردې.اوکه د دواړو عدتونو جنس یو وی .مثلاً مطلقې په خپل عدت کښې بل خاوند سره نکاح اوکړله.اوبل خاوند ورسره وطی هم کړې وی .اوبیا په دواړوکې تفریق اوکړې شی .نوپه دې صورت کې به زموږ په نیزپه دواړو کې تداخل کولې شی .

اوښځه چې کوم حیض هم اوګوری .هغه به په دواړو عدتونوکښې شمارلې شی .اوکه اولنې عدت پوره شوې وی او دوهم نه وی پوره شوې نودې باندې دوهم عدت پوره کول واجب دې.ددې صورت به دا وی چې د ښځې دیوحیض لیدلو نه روسته ورسره دوهم خاوند وطی اوکړی نود دوهم خاوند دوطی کاوه نه روسته په دې باندې درې حیضه واجب دی اودوې [دوه] به دځلورو قائمقام شی . په دې طریقه چې دوې [دوه] حیضه په اولنی عدت کې او دوې [دوه] حیضه په دوهم کې شمار کړې شی اودریم حیض صرف په دوهم کې شمار کړې شی .

اوکه د دوهم خاوند د وطی نه روسته حیض رانغلو نو په دې باندې درې حیضه واجب دی . اودا درې حیضه به د شپږو قائمقام وی .

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رحمه الله او امام شافعی رحمه الله فرمائیلی دی لَا تَتَدَاخَلَانِ چې دواړه عدتونه به په یوبل کې نه داخلیږی لِأَنَّ الْمَقْصُودَ هُوَ الْعِبَادَةُ ځکه چې مقصود عبادت دې فَإِنَّهَا عِبَادَةُ كَفٍّ عَنِ التَّزَوُّجِ وَالْخُرُوجِ ځکه چې دا د نکاح کاوه او بهر ته د وتلو نه د منع کیدلو عبادت دې. فَلَا تَتَدَاخَلَانِ. نو په دواړوکې به تداخل نه کیږی كَالصَّوْمَيْنِ فِي يَوْمٍ وَاحِدٍ.لکه څنګه چې په یوه ورځ کې دوې [دوه] روژې نه متداخل کیږی

تشریح:- امام شافعی رحمه الله فرمائی چې په دې صورت کې هم تداخل نه کیږی بلکه پوره دوې [دوه] عدتونه به تیروی .دد دوی دلیل دادې چې عدت نه مقصود دعبادت دې نوعدت نوم شو دنکاح کاوه اودبهرته وتلو نه ایساریدلو. اولکه څنګه چې روژه نوم دې د شهوت بطن اوفرج نه منع کیدل او په عباداتو کې تداخل نه کیږی .لکه په یو ورځ کې دوې [دوه] روژې نشی نیولې: نودغه ډول به په دوؤ عدتونو کې هم تداخل نه کیږی

وَلَنَا أَنَّ الْمَقْصُودَ التَّعَرُّفُ عَنْ فَرَاغِ الرَّحِمِ. او زموږ دلیل دادې.چه دعدت مقصود د رحم فراغت معلومول دی وَقَدْ حَصَلَ بِالْوَاحِدَةِ او( دا خبره) په یوعدت سره حاصلیږی فَتَتَدَاخَلَانِ ځکه به په دواړو مودوکې تداخل کیږی

تشریح:- زموږ دلیل دادې چې دعدت نه مقصود درحم دحمل نه خالی کیدل معلومول دی . اودا مقصود دحاصلیږی په یو عدت سره نو ځکه به دواړه عدتونه متداخل کیږی .

وَمَعْنَى الْعِبَادَةِ تَابِعٌ اود عبادت معنی تابع ده ،أَلَا تَرَى أَنَّهَا تَنْقَضِي بِدُونِ عِلْمِهَا. آیا نه ګوري.چه عدت د ښځې دعلم نه بغیر هم تیریږی وَمَعَ تَرْكِهَا الْكَفَّ او ددې باوجود ( هم تیریږی ) چې ښځه د خپل ځان منع کول پریږدی .

تشریح:- علامه مرغینانی رحمة الله علیه د امام شافعي رحمة الله علیه د دلیل نه ځواب ورکوی او فرمائی چې په عدت کې عبادت کي عبادت معنی تابع ده. په دې باندې دلیل دادې چې که ښځې ته علم نه وی نوهم عدت تیریږی حالانکه عبادت دنیت او علم نه بغیرنه ادا کیږی . دغه ډول که معتده دکور نه بهر اوځی یا دبل خاوند سره نکاح اوکړی نو عدت نه باطلیږی .نوکه دعبادت معنی مقصود وو نو تر هغه وخته پورې به عدت نه تیریدلو ترڅو دا دکورد وتلو اودنکاح کاوه نه منع شوې نه وه. ځکه چې ددې دوارو کارونونه منع کیدل عدت دې.او عبادت د رکن نه بغیر نه متحقق کیږی نوثابته شوه چې په عدت کي دعبادت معنی تابع ده. مقصود نه دې.

ﭐ دامام شافعي رحمة الله علیه دلیل نه صاحب د عنایه رحمة الله علیه ځواب ورکړې دې چې د عدت رکن دنکاح کاوه او دکورنه دوتلو حرمت دې.دالله ﷻ ارشاد دې چې «وَلَا تَعۡزِمُوا۟ عُقۡدَةَ ٱلنِّكَاحِ حَتَّىٰ يَبۡلُغَ ٱلۡكِتَـٰبُ أَجَلَهُۥ» او فرمائی ﴿ولا يخرجن﴾ په دې دوارو آیتونو کي د نهی صیغه مذکور ده اونهی موجب تحریم وی .نوثابته شوه چې دعدت رکن حرمت د نکاح اوخروج دې او ځوحرمتونه جمع کیداې شی مثلاً دحرم ښکار دمحرم لپاره حرام دې.داحرام د امله اودحرم د امله . دغه ډول که یوکس دشرابو نه څښلو قسم اوخوړلو حالانکه دې روژه دار وی نو په دې صورت کي شراب څښل حرام دی . دروژې د امله اودقسم د امله اود پخپله ددې دحرمت دوجې.

ﭐ ددې په خلاف روژه ددې رکن منع کیدل دی . دالله ﷻ ارشاد دې چې «ثُمَّ أَتِمُّوا۟ ٱلصِّيَامَ إِلَى ٱلَّيۡلِ» اودوې [دوه] امساکه په یوه ورځ کي نشی جمع کیدلې نو چونکه په مقیس او مقیس علیه کي فارق موجود شو نو یو په بل باندې قیاس کول صحیح نه دی .

## دمعتد وفات سره وطی کولو نه روسته ددې دعدت حکم

وَالۡمُعۡتَدَّةُ عَنۡ وَفَاةٍ او کومه (ښځه چې د خپل خاوند) چې په وفات سره په عدت کي ده. إِذَا وُطِئَتۡ بِشُبۡهَةٍ که په شبه کي (ددې سره) وطی اوکړې شوه تَعۡتَدُّ بِالشُّهُورِ نودا به په میاشتو سره (خپل) عدت پوره کوی وَتَحۡتَسِبُ بِمَا تَرَاهُ مِنَ الۡحَيۡضِ فِيهَا او په دې عدت کي چې کوم حیض اوګوری .(دا دې (په دوهم عدت کي) شمار کړی تَحۡقِيقًا لِلتَّدَاخُلِ بِقَدۡرِ الۡإِمۡكَانِ چې ترکومه پورې ممکن وی .تداخل اوشی .

تشریح:- مسئله داده که دمتوفی عنها زوجها سره په شبه بانې وطی اوشوه نو دابه دمیاشتو په حساب سره خپل عدت پوره کوی . اوپه دې څلورو میاشتو او لسو ورځو کي چې کوم حیضونه اوګوری نوهغه به په دوهم عدت کي شمارلې شی چې څومره کیدیشی تداخل راشی .

## دعدت طلاق او وفات ابتداء

وَابۡتِدَاءُ الۡعِدَّةِ فِي الطَّلَاقِ عَقِيبَ الطَّلَاقِ اود طلاق په صورت کي به د عدت ابتداء د طلاق نه روسته کیږی وَفِي الۡوَفَاةِ عَقِيبَ الۡوَفَاةِ ود وفات په صورت کي به د وفات نه روسته کیږی فَإِنۡ لَمۡ تَعۡلَمۡ بِالطَّلَاقِ أَوِ الۡوَفَاةِ بیا که (ښځې ته) د طلاق یا وفات علم اونشو حَتَّى مَضَتۡ مُدَّةُ الۡعِدَّةِ تردې چې دعدت موده تیره شوه فَقَدِ انۡقَضَتۡ عِدَّتُهَا نو ددې عدت پوره شو.

تشریح:- مصنف فرمائی چې دطلاق په صورت کي به دعدت ابتداء د طلاق نه روسته کیږی . او دوفات په صورت کي به دعدت ابتداء دوفات نه روسته کیږی تردې که خاوند ښځې ته طلاق ورکړلو او دې ته پته وه. دغه ډول خاوند یې مړ شوې وو او دې ته پته نه وه تردې چې دعدت زمانه تیره شوه نودمعلومیدو نه روسته دعدت اعاده واجب نه ده هم دا دڅلوارو اماماتو مذهب دې.



لِأَنَّ سَبَبَ وُجُوبِ الۡعِدَّةِ الطَّلَاقُ أَوِ الۡوَفَاةُ ځکه چې دعدت واجبیدو سبب (هم دا) طلاق یا وفات دې فَيُعۡتَبَرُ ابۡتِدَاؤُهَا مِنۡ وَقۡتِ وُجُودِ السَّبَبِ.نود سبب موجود کیدو د وخت څخه به د عدت ابتداء معتبر وی

تشریح:- دلیل دادې چې دعدت واجبوونکی طلاق یا وفات دې نو وجوب دعدت معلومول شو اوطلاق یاوفات علت شو. اومعلول د خپل علت سره متصل وی نو ځکه به وجوب دعدت دخپل علت یعنی طلاق یا وفات سر متصل وی او چې د کوم وخت نه علت یا سبب موجود شی نو د هغه وخت څخه به دعدت ابتداء معتبره وی .

وَمَشَايِخُنَا رحمهم الله يُفۡتُونَ فِي الطَّلَاقِ او زموږ مشائخ د طلاق په صورت کي دا فتوی ورکوی أَنَّ ابۡتِدَاءَهَا مِنۡ وَقۡتِ الۡإِقۡرَارِ چې د عدت ابتداء به د اقرار د وخت نه کیږی

تشریح:- صاحب دهدایه فرمائی چې دبخارا او سمرقند دعالمانو د طلاق په صورت کي فتوی داوه چې عدت به د اقرار د وخت نه پیل کیږی . لکه خاوند ښځې نه څه موده جلا وو او بیا خپلې ښځې ته خبر ورکړلو چې ماته ته دومره موده وړاندې طلاق درکړې دې او ښځې ته ددې علم نه وو. نوکه ښځې دده تصدیق اوکړلو نو ددې دعدت ابتداء به هم ددغه وخت نه کیږی .

نَفۡيًا لِتُهۡمَةِ الۡمُوَاضَعَةِ چې خپل منځ کي د اتفاق کاوه تهمت لرې شی .

تشریح:- او ددې دلیل دادې چې په خپل مینځ کي په اتفاق کاوه سره تهمت لرې کیدیشی یعنی ممکن ده چې ښځې او خاوند په طلاق او عدت تیریدو باندې اتفاق کړې وی . ددې لپاره چې خاوند ددې لپاره د پور اقرار اوکړی . یا ور له وصیت اوکړی (یعنی په میراث کي چې کومه برخه دې ته ملاویږی خاوند دا غواړی چې ددې نه ورته زیاته برخه ورکړم نو ددې تهمت لرې کاوه لپاره به د اقرار د وخت نه ددې عدت حسابولې شی.

## په نکاح فاسده دعدت ابتداء

وَالۡعِدَّةُ فِي النِّكَاحِ الۡفَاسِدِ عَقِيبَ التَّفۡرِيقِ أَوۡ عَزۡمِ الۡوَاطِئِ عَلَى تَرۡكِ وَطۡئِهَا او عدت د نکاح فاسد په صورت کي د تفریق نه روسته یا د وطی کونکی د وطی په پریخودو باندې د پخې ارادې کاوه سره پیل کیږی

حل اللغة: ① عقیب: روستو ② التفریق: جلا کول ③ المتارکة: پریښول ④ مساس: پیښیدل]

تشریح:- مصنف رحمة الله علیه فرمائی (۱) چې په نکاح فاسده کي به دعدت ابتداء دهغه وخت نه کیږی کله چې د حاکم د زوجینو په مینځ کي تفریق اوکړی . یا دوطی نه کاوه عزم اوکړی .

وَقَالَ زُفَرُ رحمة الله علیه او زفر رحمة الله علیه فرمائی مِنۡ آخِرِ الۡوَطَآتِ چې په آخری وطی سره پیل کیږی لِأَنَّ الۡوَطۡءَ هُوَ السَّبَبُ الۡمُوجِبُ .ځکه چې هم وطی د عدت واجبیدو سبب دې

تشریح:- او امام زفر رحمة الله علیه فرمائی چې په نکاح فاسده کښې به دعدت ابتداء د آخری وطی نه کیږی . دلیل دا بیانوی چې وطی داسې سبب دې چې ددې په وجه عدت واجبیږی .

وَلَنَا أَنَّ كُلَّ وَطۡءٍ وُجِدَ فِي الۡعَقۡدِ الۡفَاسِدِ يَجۡرِي مَجۡرَى الۡوَطۡأَةِ الۡوَاحِدَةِ او زموږ دلیل دادې چه په نکاح فاسد کي څومره خل وطی موجود شوې ده ټول) د یوځل وطی په مرتبه کي ده. لِاسۡتِنَادِ الۡكُلِّ إِلَى حُكۡمِ عَقۡدٍ وَاحِدٍ. ځکه چې د ټولو نسبت یوعقد اړخ ته دې. وَلِهَذَا يُكۡتَفَى فِي الۡكُلِّ بِمَهۡرٍ وَاحِدٍ اوهم په دې وجه ټولو کي یو مهر کافی کیږی فَقَبۡلَ الۡمُتَارَكَةِ أَوِ الۡعَزۡمِ لَا تَثۡبُتُ الۡعِدَّةُ نو یو تربله جدائی یا د وطی پریښولو د کلکې ارادې نه وړاندې عدت نه ثابتیږی. مَعَ جَوَازِ وُجُودِ غَيۡرِهِ ځکه چې اوس ددې د غیر موجود کیدلو امکان دې

تشریح:- زموږ دلیل دادې چې موږ دا منو چې دعدت د وجوب سبب وطی ده خو چې څومره وطیات په نکاح

فاسده کي موجود شوی دی هغه واړه په پشان دیووطی دی .څکه چې واړه وطیات یو عقد ارخ ته منسوب دی همدا وجه ده چې دټولو وطیاتو په وجه یو مهر واجب دې نو آخری وطی په کومه چې دعدت ترتب وی هغه به په تفریق کولوسره ثابتیږی یا دوطی نه کاوه په عزم سره څکه چې ددې نه وراندې عدت نه واجبیږی څکه چې اوس ددې دغیر یعنی دوطی وجود ممکن نه دی. (څکه چې نکاح فاسده ده).

وَلِأَنَّ التَّمَكُّنَ عَلَى وَجْهِ الشُّبْهَةِ أُقِيمَ مَقَامَ حَقِيقَةِ الْوَطْءِ او څکه چې د شبهې په طور وطی باندې قدرت موندل د حقیقي وطی قائم مقام دې لِخَفَائِهِ څکه چې وطی یو امرخفی دې

تشریح:- د دوهم دلیل حاصل دادې چې حقیقت وطی داسې خفی امر دې چې ددې سبب ظاهر یعنی دشبه په طور قدرت علی الوطی موجود دې. اوهر هغه امر خفی چې د ظاهری امرسبب وی نودغه ظاهری سبب به ددغه امر خفی قائمقام وی . نو چې په دې باندې دقدرت حاصل وی . آخری وطی متعین کولې نشی څکه چې دهر وطی نه روسته قدرت علی الوطی پاته وی . ددې امله موږ وایو چې په دواړو کي تفریق یا په ترك وطی باندې عزم ضروری دې. چې قدرت علی الوطی پورته شی . او آخری وطی متعین شی .

وَمَسَاسِ الْحَاجَةِ إِلَى مَعْرِفَةِ الْحُكْمِ فِي حَقِّ غَيْرِهِ او ددې اړتیا راپیښیږی .چه د وطی کونکی نه علاوه د دوهم کس په حق کي حکم معلوم وی .

تشریح:- اوپه «مساس الحاجة» سره دیوسوال څواب دې. سوال دادې چې موږ دانه منو چې وطی حقیقت یو امر خفی دې څکه چې دعدت دپیژندګلو حاجت زوجینو ته دی. اود زوجینو په نیز د وطی امر خفی نه دې. څواب دادې چې بعضې وخت غیر وطی ته هم دعدت حکم معلومولو اړتیا پیښیږی لکه دا کس ددې ښځي سره نکاح کول غواړی . نو ده ته به ددې خبر معلومولو اړتیا پیښیږی چې ددې عدت کله پیل شوی دې او ختم شوې دې که نه.نود زوجینو په حق کي حقیقت وطی اګر چې پټ نه دې خو ددوئ نه علاوه د نورو خلګ و په حق کي خوامر خفی دې.

## دمعتد دعدت تیریدو دعوی کول

وَإِذَا قَالَتِ الْمُعْتَدَّةُ انْقَضَتْ عِدَّتِي او که معتدې اووئیل.زما عدت تیرشوی دې وَكَذَّبَهَا الزَّوْجُ او خاوند دا دروغ اوګرځول كَانَ الْقَوْلُ قَوْلَهَا مَعَ الْيَمِينِ نو قول به د ښځي ( معتبر) وی .( خو) په قسم سره

تشریح:- مسئله داده چې معتده اووئیل زما عدت پوره شوی دې او خاوند ددې تکذیب کوی اود عدت تیریدو نه انکار کوی نو په دې صورت کښې به دښځي قول مع الیمین معتبر وی .

لِأَنَّهَا أَمِينَةٌ فِي ذَلِكَ څکه چې دا د عدت په اړه کي امین ده وَقَدِ اتُّهِمَتْ بِالْكَذِبِ حالانکه دا په دروغو سره متهم ده

تشریح:- دلیل دادې چې ښځه دعدت تیریدو په خبر ور کاوه کي امینه ده. څکه چې ددې علم دښځي نه سوا بل چاته نشی کیدې. خود ښځي د دروغ ونیلو هم احتمال شته څکه به دښځي نه قسم اخستلې شی .

فَتَحْلِفُ كَالْمُودَعِ نو ددې څخه به قسم اخستې شی .لکه هغه کس چې دده سره امانت ایخودې شوې وی .

تشریح:- لکه چې یو کس وی چې امانت ورسره کیخودې شوې وی او هغه دعوی اوکړی چې ما امانت واپس کړې دې یا د هلاکت دعوی اوکړی .او چې د چا امانت وی هغه ئې تکذیب کوی نو په دې صورت کي به د مودع (چاسره چې امانت کیخودې شوې وی ) نه قسم اخستلې شی اومع الیمین به دوې [دوه] قول معتبر وی.

## دطلاق بائن نه روسته دوباره نکاح او د دخول نه وړاندې طلاق ورکول



وَإِذَا طَلَّقَ الرَّجُلُ امْرَأَتَهُ طَلَاقًا بَائِنًا اوکه سړی خپلې ښځي ته طلاق بائن ورکړو ثُمَّ تَزَوَّجَهَا فِي عِدَّتِهَا بیا ئې ددې په عدت کي ددې سره نکاح اوکړله وَطَلَّقَهَا قَبْلَ الدُّخُولِ بِهَا او ددې سره ددخول نه وړاندې ئې دې ته طلاق ورکړو فَعَلَيْهِ مَهْرٌ كَامِلٌ وَعَلَيْهَا عِدَّةٌ مُسْتَقْبَلَةٌ نو په خاوند باندې ( ددې ) پوره مهر او په ښځه باندې مستقلاً ( جدا) عدت واجب دې وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رحمهما الله [1] اودا د ابوحنیفه او ابویوسف رحمهما الله په نیز دی

حل اللغة: ① استیناف العدة: دسر نه پیل کیدل د عدت ② مقبوضة قبض شوې ③ مجرد العقد صرف عقد ④ اتمام: پوره کول ]

تشریح:- صورت د مسئلې دادې چې سړی خپلې ښځي ته طلاق بائن ورکړلو او بیا ئې ورسره دهغې په عدت کي دوباره نکاح اوکړله. دوطی او خلوت صحیحه نه وړاندې ئې ورته بیا طلاق ورکړلو نو په دې اړه کښې دشیخینو رحمهما الله په نیز د دویمې نکاح په وجه په خاوند باندې پوره مهر اوپه ښځه باندې مستقل دوهم عدت واجب دې.

وَقَالَ مُحَمَّدٌ رحمه الله: عَلَيْهِ نِصْفُ الْمَهْرِ .امام محمد رحمه الله فرمائی .چه په خاوند باندې نصف مهر واجب دې وَعَلَيْهَا إِتْمَامُ الْعِدَّةِ الْأُولَى او په ښځه اولنې عدت پوره کول واجب دې لِأَنَّ هَذَا طَلَاقٌ قَبْلَ الْمَسِيسِ څکه داطلاق د جماع نه مخکې دې فَلَا يُوجِبُ كَمَالَ الْمَهْرِ وَلَا اسْتِئْنَافَ الْعِدَّةِ روښه نه واجبه وی کمال مهر په خاوند او نه نوی عدت په ښځه باندی.

تشریح:- او د امام محمد رحمه الله په نیز خاوند باندې نیم مهر واجب دې اوپه ښځه باندې بیخی عدت واجب نه دې نه اولنې او نه دویم.

ⓘ دامسئله په یو اصل باندې موقوفه ده اصل دادې چې په لومړنی نکاح کي په ښځه باندې دخول په دویمه نکاح کي دخول کاوه کي شمارلې شی که نه په دې اړه کي دامام محمد رحمه الله قول دادې چې په لومړنی نکاح کي هم دخول شمارلې شی .

ⓘ دامام محمد رحمه الله دلیل دادې چې دویمه نکاح کي کوم طلاق ورکړې شوې وی هغه دوطی او خلوت صحیحه نه وړاندې ورکړې شوې وی . او په طلاق قبل الوطی او قبل الخلوت کي نه په خاوند باندې پوره مهر واجبیږی اونه په ښځه باندې عدت واجبیږی نو په خاوند باندې به نیم مهر واجبیږی پوره نه او په ښځه به دنوی عدت پوره کول واجب نه وی بلکه اولنې عدت پوره کول واجب وې.

وَإِكْمَالُ الْعِدَّةِ الْأُولَى او په ښځه باندې رومبې عدت پوره کول إِنَّمَا يَجِبُ بِالطَّلَاقِ الْأَوَّلِ نودا د رومبی طلاق په وجه واجب دې إِلَّا أَنَّهُ لَمْ يَظْهَرْ حَالَ التَّزَوُّجِ الثَّانِي مګردا چې د دویمې نکاح حال نه وی ښکاره شوې فَإِذَا ارْتَفَعَ بِالطَّلَاقِ الثَّانِي نوهرکله چې ( دویمه نکاح) د دوهم طلاق نه لرې شو ظَهَرَ حُكْمُهُ نود رومبی طلاق حکم ښکاره شو

تشریح:- پاتې شوه دا خبره چې داولنی عدت پوره کول واجب دی .نو ددې څواب دادې چې داولنی طلاق د امله عدت واجب شوې وو. خو چې نکاح ئې اوکړه نو دهغې حکم ښکاره نشو.خوهرکله چې دې ښځې ته د دخول نه مخکې طلاق ورکړې شوې وی نو دویمه نکاح معدومه شوه اودا داسې شوه لکه چې هډو دویمه نکاح شوې نه وی .نو داولنی طلاق حکم ښکاره شو اوپه دې ښځه باندې د اولنی عدت پوره کول واجب شو.

كَمَا لَوِ اشْتَرَى أُمَّ وَلَدِهِ که ( مثلاً) یوکس خپله ام ولد واخستله ثُمَّ أَعْتَقَهَا. بیا ئې دا آزاده کړله.

[1]) القول الراجح هو قول الشيخين رحمهما الله كذا في ردالمحتار(٢\٦٦٦) والبحرالرائق (١٤٨\٤) والعناية (١٥٦\٤)نقلاً عن القول الراجح (٣٧٢\١)-

تشریح:- ددې مثال داسې دی چې یوکس دبل چا د وینځې سره نکاح اوکړه او دهغې وینځې بچې پیدا شی. بیا دې کس خپله منکوحه وینځې دهغې دمولی نه واخستله. بیا ئې هغه آزاده کړه.نو په دې آزاده شوې وینځه باندې درې حیضه واجب دی .دوې [دوه] حیضه د لومړنی نکاح د زوال د امله او یوحیض د آزادولو په وجه. ځکه چې هرکله دې کس خپله منکوحه وینځه واخستله نو نکاح فاسده شوه. او په دې وینځه باندې دوې [دوه] حیضه دعدت په طور واجب شول.نو ددې ونیزې نکاح دبل چاسره جائز نه ده.تر دې چې څو دعدت زمانه نه وی تیره شوې.خو ددې په حق کې به دعدت حکم نه ښکاره کیږی . ځکه چې مانع دعدت یعنی ملك یمین موجود دې نوهرکله چې ئې آزاده کړه نومانع عدت هم زائله شو نوځکه اوس په خپله ددې په حق کښې هم دعدت حکم ښکاره شو. نو دوې [دوه] حیضه د فساد نکاح په وجه واجب شول. اوپه دې کې په دې باندې غم ښکاره کول واجب وی، اودریم حیض د د آزادیدو په وجه واجب وه.خو په دې کې دغم اظهار لازم نه دی.

وَلَهُمَا اود شیخینو رحمهما الله دلیل دادې أَنَّهَا مَقْبُوضَةٌ فِي يَدِهِ حَقِيقَةً بِالْوَطْأَةِ الْأُولَى چې دا ښځه د خپل خاوند په لاس کې په حقیقت کې د ړومبئ وطی په وجه مقبوضه ده وَبَقِيَ أَثَرُهُ وَهُوَ الْعِدَّةُ اود ړومبئ وطی اثر یعنی عدت اوس هم پاته دی. فَإِذَا جَدَّدَ النِّكَاحَ نوهرکله چې دې نوې نکاح اوکړله وَهِيَ مَقْبُوضَةٌ حالانکه دا دده په قبضه کې ده نَابَ ذَلِكَ الْقَبْضُ عَنِ الْقَبْضِ الْمُسْتَحَقِّ فِي هَذَا النِّكَاحِ نو قبضه د دویمې نکاح د قبضه' واجبه قائم مقام شوه

تشریح:- د شیخینو رحمهما الله دلیل دادې چې دا ښځه په حقیقت کې د لومړنی وطی په وجه دخپل خاوند په لاس کې مقبوضه ده.او تر اوسه پورې د لومړنی وطی اثر یعنی عدت هم پاته دې. نو هرکله چې خاوند دعدت په زمانه کې تجدید د نکاح اوکړلو.حالانکه دا ښځه په لومړنی نکاح کې د دخول په وجه مقبوضه وه. نوهغه قبضه چې په لومړنی نکاح کې ددخول په وجه وه دا به ددې دویمې نکاح د قبضه واجبه قائمقام شی نو هرکله چې ورته ده طلاق ورکړو نو داسې شوه. لکه چې ده په دویمه نکاح کې هم د دخول نه روسته طلاق ورکړو. ددې امله به په خاوند باندې پوره مهر اوپه ښځه باندې مستقل دوهم عدت واجب وی .

كَالْغَاصِبِ يَشْتَرِي الْمَغْصُوبَ الَّذِي فِي يَدِهِ لکه غاصب مغصوب شئ واخلی .کوم چې دده په قبضه کې دې يَصِيرُ قَابِضًا بِمُجَرَّدِ الْعَقْدِ نودا غاصب مشتری ، د عقد په وجه قبضه کونکې جوړیږی فَوَضَحَ بِهَذَا أَنَّهُ طَلَاقٌ بَعْدَ الدُّخُولِ نو په دې ( بیان) سره ښکاره شوه.چه دا طلاق بعد الدخول دې

تشریح:- ددې نظیر دادې چې غاصب دمالك نه هغه مغصوب شی واخستلو. کوم چې دغاصب په قبضه کې وو نو په دې صورت کې غاصب صرف د بیع دعقد په وجه قبضه کونکې شو . د نوې قبضې اړتیا نشته دې. ځکه چې کومه قبضه په حالت د غصب کې وه هم ددې قائمقام شوه کومه چې په بیع باندې واجب شوه. نو ثابته شوه چې ددویمې نکاح نه روسته طلاق بعد الدخول شو قبل الدخول نشو.

وَقَالَ زُفَرُ رحمه الله لَا عِدَّةَ عَلَيْهَا أَصْلًا او امام زفر رحمه الله فرمائی .چه په دې ښځه باندې بالکل عدت واجب نه دې لِأَنَّ الْأُولَى قَدْ سَقَطَتْ بِالتَّزَوُّجِ ځکه چې ړومبې عدت د نکاح ثانی په وجه ساقط شو فَلَا تَعُودُ نودا به نه واپس کیږی وَالثَّانِيَةُ لَمْ تَجِبْ او دوهم عدت د سره واجب نشو وَجَوَابُهُ مَا قُلْنَا او ددې ځواب هم هغه دې.کوم چې موږ بیان کړې دې.

تشریح:- امام زفر رحمه الله فرمائی چې عدت هډو شته نه او دلیل دا بیانوی چې د دویمې نکاح په وجه اولنې عدت ساقط شو نو هغه واپس نه واجبیږی ځکه چې قاعده ده «الساقط لا یعود» او دوهم عدت نه واجب نه وی . دامام زفر رحمه الله د دلیل ځواب وړاندې تیر شوې دې. هغه اوګورئ .

**د ذمیه ته طلاق ورکولو باندې دعدت حکم .**



وَإِذَا طَلَّقَ الذِّمِّيُّ الذِّمِّيَّةَ اوکه ذمی ذمیه ته طلاق ورکړو فَلَا عِدَّةَ عَلَيْهَا .نو په ذمیه ښځه باندې عدت نشته وَكَذَا إِذَا خَرَجَتِ الْحَرْبِيَّةُ إِلَيْنَا مُسْلِمَةً اوهم دغه ډول که حربیه ښځه مسلمانه شی زموږ ( ملك دارالاسلام ته) راشی . نو په دې باندې عدت نشته فَإِنْ تَزَوَّجَتْ جَازَ که دې نکاح اوکړله.نوجائز ده إِلَّا أَنْ تَكُونَ حَامِلًا .مګر داچه حامله وی ( نو نکاح جائز نه ده). وَهَذَا كُلُّهُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله اودا واړه د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز دی

حل اللغة: ① التملك: مالك جوړول ② الجماد: بې روح څیز ③ بطن: نس ④ الحربیة: هغه کافره ښځه چې په دارالحرب کې اوسیږی ]

تشریح:- په دې عبارت کې دوې [دوه] صورتونه ذکر دی ①یو داچه ذمی خپلې ښځې ته طلاق ورکړو.②دوهم دا چې حربیه ښځه مسلمانه شوه. ددارالکفر نه دارالاسلام ته لاړه نو په دې دواړو صورتونوکې دامام ابو حنیفه رحمه الله په نیز ښځه باندې عدت واجب نه دې.که ښځه نکاح کوی نوشرعا صحیح ده. خوکه دا ښځه حامله وی نو نکاح صحیح نه ده.

وَقَالَا: عَلَيْهَا وَعَلَى الذِّمِّيَّةِ الْعِدَّةُ .او صاحبین رحمهما الله فرمائی .چه په دې ښځه او ذمیه باندې عدت واجب دې. أَمَّا الذِّمِّيَّةُ فَالِاخْتِلَافُ فِيهَا بهرحال ذمیه په اړه کې د اختلاف مثال دې نَظِيرُ الِاخْتِلَافِ فِي نِكَاحِهِمْ مَحَارِمَهُمْ کوم چې د ذمیانو خپلو محارمو سره د نکاح کاوه په اړه کې دې وَقَدْ بَيَّنَّاهُ فِي كِتَابِ النِّكَاحِ .او موږ دا په کتاب النکاح کې بیان کړی دی وَقَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله .اود امام ابوحنیفه رحمه الله قول په دې صورت کې دې فِيمَا إِذَا كَانَ مُعْتَقَدُهُمْ أَنَّهُ لَا عِدَّةَ عَلَيْهَا .چه کله د ذمیانو اعتقاد داوی .چه په ذمیه مطلقه باندې عدت نشته

تشریح:- او صاحبین رحمهما الله فرمائی چې په دواړو صورتونو کې په ښځه باندې عدت واجب دې.

صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی چې په ذمیه ښځه باندې دعدت په وجوب او عدم وجوب کې دامام ابو حنیفه رحمه الله او صاحبینو [ په نیز اختلاف داسې دې لکه څنګه چې په نکاح کې وو. او دا اختلاف د دلائلو سره په «باب نکاح اهل الشرك» کې تیر شوې دې.دا خیال ساتئ چې دامام ابو حنیفه رحمه الله قول په هغه صورت کې دې چې د ذمیه اعتقاد داوی چې په ذمیه مطلقه باندې عدت نشته دې.

وَأَمَّا الْمُهَاجِرَةُ. او پاتې شوه مهاجره( کومه چې مسلمانه شي او دارالاسلام اړخ ته هجرت اوکړی راشی ) فَوَجْهُ قَوْلِهِمَا نو ددې په اړه کې د صاحبینو رحمهما الله د قول وجه داده أَنَّ الْفُرْقَةَ لَوْ وَقَعَتْ بِسَبَبٍ آخَرَ که جدائی په څه بل سبب سره واقع کیدله وَجَبَتِ الْعِدَّةُ .نو عدت به واجب وو فَكَذَا بِسَبَبِ التَّبَايُنِ دغه ډول دارالکفر پریښول او دارالاسلام ته راتګ و سره چې کومه جدائی واقع شوه.( په دې کې به هم عدت واجب وی )

تشریح:- او پاتې شوه هغه ښځه چې د دارلحرب نه دارالاسلام ته هجرت اوکړی نو په دې اړه کې د صاحبینو [ دقول وجه داده که په دارالاسلام کې د تبائن دارین نه سوابل څه سبب فرقت واقع شوې وی لکه دطلاق په وجه یا د مرګ په وجه نو په اتفاق سره عدت واجب دې. نو دغه ډول به په تبائن دارین یعنی چې ښځه دارالاسلام ته راشی . هم چې فرقت واقع شی نو عدت به واجب وی .

بِخِلَافِ مَا إِذَا هَاجَرَ الرَّجُلُ وَتَرَكَهَا. په خلاف ددې چې کله سړی هجرت اوکړو.او ښځه ئې( په دارالحرب کې ) پریښودله.( نوپه دې باندې عدت نشته) لِعَدَمِ التَّبْلِيغِ ځکه چې دې ته د شریعت نه دې رسیدلې وَلَهُ قَوْلُهُ تَعَالَى { لَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ أَنْ تَنْكِحُوهُنَّ } اود امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادې.چه الله تعالی فرمانیلی دی ((وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ أَنْ تَنْكِحُوهُنَّ)) یعنی په تاسو باندې ګناه نشته.چه دوی سره نکاح اوکړئ.

تشریح:- البته که سړی د دارالحرب نه هجرت اوکړو او دارالاسلا ته راغلو او دده ښځه په دارالحرب کې اوسیږی په دې صورت کې په ښځه باندې عدت واجب نه دې. ځکه چې په دارالحرب کې هغې ته د شریعت حکم نه دې رسیدلې.

اودامام ابو حنيفه رحمه الله دليل دادې چې الله ﷻ فرمائيلي دى (يَاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِذَا جَآءَكُمُ الْمُؤْمِنٰتُ مُهٰجِرٰتٍ فَامْتَحِنُوْهُنَّ اَللّٰهُ اَعْلَمُ بِاِيْمَانِهِنَّ فَاِنْ عَلِمْتُمُوْهُنَّ مُؤْمِنٰتٍ فَلَا تَرْجِعُوْهُنَّ اِلَى الْكُفَّارِ لَا هُنَّ حِلٌّ لَّهُمْ وَلَا هُمْ يَحِلُّوْنَ لَهُنَّ وَاٰتُوْهُمْ مَّآ اَنْفَقُوْا وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ اَنْ تَنْكِحُوْهُنَّ اِذَآ اٰتَيْتُمُوْهُنَّ اُجُوْرَهُنَّ وَلَا تُمْسِكُوْا بِعِصَمِ الْكَوَافِرِ وَاسْئَلُوْا مَآ اَنْفَقْتُمْ وَلْيَسْئَلُوْا مَآ اَنْفَقُوْا ذٰلِكُمْ حُكْمُ اللّٰهِ يَحْكُمُ بَيْنَكُمْ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ) پوره آيت داسې دې. (سورت ممتحنه) ائې ايمان والو كله چې تاسوته مسلمانې ښځې (د دارالحرب) نه هجرت اوكړى او راشى نو تاسو دهغوى امتحان واخلئ دهغوى ايمان الله ﷻ ښه پيژني نوكه دوى مو د دوى دامتحان په اعتباره سره مسلمانې اوګڼلې نو دوئ كافرانو ته مه واپس كوئى (ځكه چه) نه خودغه ښځې ددغه كافرو لپاره حلالې دې اونه هغه كافر سړى ددې مسلمانانو ښځو لپاره حلال دى. او دې كافرانو چې كوم شى خرج كړې وى هغه هغوئ ته وركړئ اوپه تاسو باندې دې ښځو سره په نكاح كاوه كې څه ګناه نشته دې كله چې تاسو هغوئ ته مهرونه ادا كوئى (بيان القران).

په دې آيت باندې استدلال داسې كيږى چې الله ﷻ دمهاجرو ښځو سره دنكاح كاوه مطلقًا اجازت وركړې دې. اوفرمائى چې ((وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ اَنْ تَنْكِحُوْهُنَّ)) نوكه دا اجازت دعدت تيريدو سره مقيد كړې شى نو په دې كې به نص قرآني باندې زيادت راځى. كوم چې صحيح نه دې.

وَلِأَنَّ الْعِدَّةَ حَيْثُ وَجَبَتْ كَانَ فِيهَا حَقُّ بَنِي آدَمَ اوځكه چې كوم ځائې عدت واجبيږى. په هغې كې د سړى حق وى وَالْحَرْبِيُّ مُلْحَقٌ بِالْجَمَادِ او حربى جماد سره ملحق دې حَتَّى كَانَ مَحَلًّا لِلتَّمَلُّكِ. تردې چې دې د ملكيت محل كيداې شى

تشريح:- اوعقلى دليل دادې چې عدت په كوم ځائې كې هم وى نو په هغې كې دسړى حق وى. ځكه چې په ښځه باندې دعدت وجوب دسړى دمنئ د ساتنه لپاره دې. او هم دا وجه ده چې دطلاق قبل الدخول په صورت كې په ښځه باندې عدت واجب نه دې. او حربى كافران دكانړ او ځناورو پشان دى. تردې چې په دوى باندې رقيت ثابتيږى. اودوئ په بازار كې د ځناورو پشان خرڅولى شى. نوهركله چې دحربى د جماد سره ملحق شو نو دده اوبه «منى» هم قابل احترام پاتې نشوه. نو ددې ساتنه به هم نشى كولې. اوهركله چې دده د منئ ساتنه پاته پاتې نشو. نود ده په ښځه باندې عدت هم واجب پاتې نشو.

إِلَّا أَنْ تَكُونَ حَامِلًا. مګردا چې دا حامله وى لِأَنَّ فِي بَطْنِهَا وَلَدًا ثَابِتَ النَّسَبِ ځكه چې ددې په نس كې ثابت النسب بچې دې.

تشريح:- البته كه دحربى ښځه حامله وى نودوضع حمل نه وړاندې دهغې سره نكاح كول جائز نه دى ځكه چې دهغې په نس كې كوم بچې دې هغه ثابت النسب دې او فراش موجود دې. اوس كه سره دنكاح كاوه اجازت وركړې شى نو جمع بين الفراشين به راشى. حالانكه په شريعت كې جمع بين الفراشين ممنوعه ده.

وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله أَنَّهُ يَجُوزُ نِكَاحُهَا اود ابوحنيفه رحمه الله نه روايت دې. چه دې حامله سره نكاح جائز ده وَلَا يَطَؤُهَا او ددې سره به وطى نه كوى كَالْحُبْلَى مِنَ الزِّنَا. لكه د حامله من الزنا (سره چې وطى نشى كولې) وَالْأَوَّلُ أَصَحُّ او رومبى قول اصح دې.

تشريح:- دامام ابو حنيفه رحمه الله نه يو روايت دا هم دې چې حامله مهاجرې سره نكاح كول جائز دى. خو وطى كول ورسره جائز نه دى لكه څنګه چې د زنانه حاملې سره نكاح جائز ده. خو وطى صحيح نه ده خو اول قول يعنى دعدم جواز نكاح قول زيات صحيح دې. ځكه چې دحمل من الزنا نسب ثابت نه دې. اودلته دحربى نه نسب ثابت دې نودا په حامله من الزنا باندې قياس كول صحيح نه دى. والله اعلم بالصواب.

## په مبتوته اومتوفى عنها زوجها باندې غم كول

فَصْلٌ قَالَ قدورى رحمه الله فرمائى وَعَلَى الْمَبْتُوتَةِ چې د كومې ښځې د خپل خاوند نه قطعى جدائى اوشوه. (په يو طلاق، اوكه په درې طلاقو اوكه په خلع) وَالْمُتَوَفَّى عَنْهَا زَوْجُهَا اود كومې ښځې چې خاوند مړشى إِذَا



كَانَتْ بَالِغَةً مُسْلِمَةً الْحِدَادُ نو په دې باندې غم كول واجب دى كله چې دا بالغه مسلمانه وى

حل اللغة: ① التاسف: افسوس كول ② الحداد: غم كول، زيب او زينت پريښودل ③ تختضب: رنګ كوى ④ الحناء نكريزې ⑤ صون: ساتنه ⑥ مونة: مشقت ⑦ الابانة: جلا كول ]

تشريح:- وړاندې نفس وجوب دعدت اوكيفيت دوجوب عدت بيان كړى شو. اوچه په كومو ښځو عدت واجب دې اوپه كومو واجب نه دې. ددې بيان اوشو. په دې فصل كې مصنف ا دهغه ځيزونو ذكر كوى كوم چې په معتداتو باندې واجب وى. اودكوم نه كول چې واجب دى. نوفرمائى چې مبتوته يعنى هغه ښځه چې دهغې نه حق د رجعت منقطع شوې وى. برابره ده چې په درې طلاقو سره وى اوكه په يو طلاق بائن سره وى. يا په خلع سره وى اوهغه ښځه چې دهغې خاوند وفات شوې وى. كه دامسلمانه او بالغه وى نو په دې باندې غم واجب دې.

أَمَّا الْمُتَوَفَّى عَنْهَا زَوْجُهَا بهرحال،، متوفى عنهازوجها،، فَلِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {لَا يَحِلُّ لِامْرَأَةٍ تُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ أَنْ تُحِدَّ عَلَى مَيِّتٍ فَوْقَ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ} ځكه چې د نبى كريم ﷺ ارشاد دې. چه كومه ښځه په الله او په ورځ د قيامت باندې ايمان ساتى. دې له حلال نه دى. چه د درې ورځو نه زيات په يوسړى باندې غم اوكړى إِلَّا عَلَى زَوْجِهَا أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ وَعَشْرًا (١) سوا د خپل خاوند نه. چه په ده باندې څلور مياشتې لس ورځې (غم اوكړى) وَأَمَّا الْمَبْتُوتَةُ او پاتې شوه مبتوته فَمَذْهَبُنَا نو دا زمونږ مذهب دې

تشريح:- په متوفى عنها زوجها باندې دغم په وجوب كې نبى ﷺ فرمائيلى دى چې كومه ښځه چې په الله ﷻ اوپه ورځ د آخرت ايمان راوړى دهغې لپاره مړى باندې د درې ورځو نه زيات غم كول حلال نه دى. سوا د خاوند نه ځكه چې خپل خاوند باندې څلور مياشتې اولس ورځې غم كولې شى.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رحمه الله لَا حِدَادَ عَلَيْهَا او امام شافعى رحمه الله فرمائى. چه په دې باندې غم لازم نه دې لِأَنَّهُ وَجَبَ إِظْهَارًا لِلتَّأَسُّفِ عَلَى فَوْتِ زَوْجٍ ځكه چې غم كول خو دداسې خاوند په فوت كيدلو باندې خفګان ښكاره كاوه لپاره وى وَفَى بِعَهْدِهَا إِلَى مَمَاتِهِ چې ده د مرګه پورې ددې ښځې معاهده پوره كړې وى وَقَدْ أَوْحَشَهَا بِالْإِبَانَةِ حالانكه دې سړى په جلا كاوه سره دا په وحشت كې واچوله فَلَا تَأْسَفُ بِفَوْتِهِ نو دده په جدايئ باندې په غم سره خفګان كول لازم نه دى

تشريح:- دامام شافعى رحمه الله په نيزغم كول د خاوند په مرګ باندې كولې شى. چا چې دخپل مرګه پورې معاهده پوره كړې وى. حالانكه دې كس د بائنه كاوه په وجه دا په ويره كې واچوله. نو ددې نالائقه په مرګ غم كول نه دى پكار.

وَلَنَا مَا رُوِيَ او زمونږ دليل هغه حديث دې. چه په دې كې روايت شوې دې {أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى الْمُعْتَدَّةَ أَنْ تَخْتَضِبَ بِالْحِنَّاءِ} (٢) چې نبى كريم ﷺ معتده د حناء رنګ استعمالولو نه منع كړې ده وَقَالَ {الْحِنَّاءُ طِيبٌ} او فرمائيلى ئې دى. چه حناء خوشبو ده

تشريح:- زمونږ دليل دادې چې نبى كريم ﷺ معتده ښځه د نكريزو داستعمال نه منع كړې ده او فرمائيلى ئې دى چې نكريزې خوشبوئى ده. دحديث راويه سلمه رضي الله عنها ده. او په دې حديث كې د معتده وفات او غير

١) من حديث ام عطية رضي الله عنها أخرجه البخارى فى الحيض باب ١٢ ومسلم فى الطلاق رقم ٦٦ وأبوداود فى الطلاق باب ٤٦ رقم ٢٣٠٢ والنسائى فى الطلاق باب ٦٤ رقم ٣٣٠٨ وابن ماجه فى الطلاق باب ٣٥ رقم ٢٠٨٧ والدارمى فى الطلاق باب ١٣ ،أحمد فى السمند ٨٥١٥)_

٢) تقدم تخريجه فى جنايات الحج)_

وفات څه تفصیل نشته دی.نو معلومه شوه چې مطلقا په معتده باندې غم کول واجب دی که معتده دوفات وی اوکه د غیر وفات وی.

وَلِأَنَّهُ يَجِبُ إِظْهَارًا لِلتَّأَسُّفِ عَلَى فَوْتِ نِعْمَةِ النِّكَاحِ .اوځکه چې سوګ د نکاح نعمت فوت کیدلو باندې د خفګان ښکاره کاوه لپاره واجبیږی اَلَّذِي هُوَ سَبَبٌ لِصَوْنِهَا وَكِفَايَةِ مُؤْنَتِهَا کوم چې ددې ښځې د ساتنه او ددې د ضروریاتو دکفایت سبب وو وَالْإِبَانَةُ أَقْطَعُ لَهَا مِنَ الْمَوْتِ او جدائی واقع کیدل د ښځې په حق کې د خاوند د مرګ نه زیات د یرې شی دی.حَتَّى كَانَ لَهَا أَنْ تُغَسِّلَهُ مَيِّتًا قَبْلَ الْإِبَانَةِ چې د جدایئ نه وړاندې دا خپل مړ خاوند ته غسل ور کولای شی لَا بَعْدَهَا جدایئ نه روسته نشی ( ورکولې).

تشریح:- عقلی دلیل دادې چې مبتوته دمتوفی عنها زوجها پورې لاحقه کړې شی . اوداسې تقریر اوکړې شی چې په متوفی عنها زوجها په غم کاوه باندې نص وارد دی لکه څنګه چې اوس حدیث تیرشو. اودغم ښکاره کاوه وجوب وجه دنکاح دنعمت په فوت کیدو باندې دافسوس اظهار کول دی . څوک چې ددې ښځې د ساتنه اوکفالت سبب وو. او بینونت واقع کیدل دښځې حق د خاوند دوفات نه زیات قطع کوونکی دی.ځکه چې دنکاح حکم د وفات نه روسته دعدت تیریدو پورې پاتې وی هم دا وجه ده چې ښځه خپل مړ خاوند ته دبائنه کاوه نه وړاندې غسل ورکولې شی . خو چې بائنه شی نو ددې نه روسته که خاوند مړشو . دا ورته غسل نه شی ورکولې. نوهرکله چې مبتوته دمتوفی عنها زوجها سره لاحقه کړې شوه. نو چې کوم حکم دمتوفی عنها زوجها وی هم هغه حکم به دمبتوته وی .یعنی په دواړو باندې غم کول واجب دی.

## دحداد مصداق

وَالْحِدَادُ او حداد وَيُقَالُ الْإِحْدَادُ او وئیلې شی احداد وَهُمَا لُغَتَانِ دا دواړه لغتونه دی أَنْ تَتْرُكَ الطِّيبَ وَالزِّينَةَ وَالْكُحْلَ وَالدُّهْنَ الْمُطَيَّبَ وَغَيْرَ الْمُطَيَّبِ ( دادې چې) ښځه خوشبو لګول، او زینت کول، او رانجه لګول، او تیل لګول،که خوشبودار وی .اوکه بغیر د خوشبو وی .واړه پریږدی إِلَّا مِنْ عُذْرٍ مګر د عذر په وجه ( استعمالول جائز دی). وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ إِلَّا مِنْ وَجَعٍ او په جامع صغیر کې دی.چه مګر د درد تکلیف په وجه،

حل اللغة: ① الکحل رانجه ② الدهن: تیل ③ التاسف افسوس کول ④ دواعی جمع د داعیة: دعوت ورکوونکی ⑤ لایعری نه خالی کیږی ⑥ الشعر ویښته ⑦ الدواء دوائی کول ⑧ الوجع درد ⑨ الحریر ریښم ⑩ تختضب رنګ کوی ⑪ الحناء نکریزې ⑫ المصبوغ رنګ شوې ⑬ عصفر یوقسم خوشبوئی ده ⑭ یفوح خوریږی

تشریح:- حداد په معنی دغم کاوه دوهم لغت احداد دی. اول دباب نصر اوضرب ځنې دې. او دوهم دباب افعال ځنې دې. دښځې غم کول دادی چې دا خوشبوئی لګول زینت کول، رانجه لګول، تیل لګول که خوشبودار وی اوکه غیر خوشبودار وی . دا واړه شیان (څیزونه ) پریږدی. البته که څه عذر وی اود جامع صغیر د بیان مطابق که درد وغیره وی نو ددې څیزونو په استعمال کې څه قباحت نشته دی.

وَالْمَعْنَى فِيهِ وَجْهَانِ. او په غم کولو کې دلیل په دوې [دوه] قسمه معنی ورکوی أَحَدُهُمَا مَا ذَكَرْنَاهُ اول داچه موږ کوم ذکرکړو مِنْ إِظْهَارِ التَّأَسُّفِ یعنی خفګان ښکاره کول وَالثَّانِي: أَنَّ هَذِهِ الْأَشْيَاءَ دَوَاعِي الرَّغْبَةِ فِيهَا او دوهم داچه داسې شیان (څیزونه ) په دې ښځه کې زیات شوق پیدا کوی وَهِيَ مَمْنُوعَةٌ عَنِ النِّكَاحِ حالانکه دا ښځه نکاح نه منع شوې ده فَتَجْتَنِبُهَا نودا دې ددې څیزونو نه منع شی كَيْ لَا تَصِيرَ ذَرِيعَةً إِلَى الْوُقُوعِ فِي الْمُحَرَّمِ چې دا شیان (څیزونه ) په حرام کې د اخته کاوه ذریعه جوړه نشی وَقَدْ صَحَّ أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ لَمْ يَأْذَنْ لِلْمُعْتَدَّةِ



فِي الِاكْتِحَالِ اودا خبره صحت ته رسیدلې ده.چه نبی کریم ﷺ معتده ته د رانجو لګولو اجازت نه دې ورکړې وَالدُّهْنُ (۱) لَا يَعْرَى عَنْ نَوْعِ طِيبٍ او تیل یو ډول خوشبو نه خالی نه وی وَفِيهِ زِينَةُ الشَّعْرِ او په دې کې د ایختو زینت دې وَلِهَذَا يُمْنَعُ الْمُحْرِمُ عَنْهُ .په دې وجه محرم د تیل استعمالولو نه منع کړې شوې دی

تشریح:- علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی چې ددې څیزونو پرینښودو باندې دوې [دوه] دلیلونه دی ① یو خو هغه کوم چې موږ په وړاندینۍ مسئله کې بیان کړلو.یعنی دنکاح غوندې لوئې نعمت په زوال باندې دغم اظهار کول. ② دوهم دلیل دادې چې دا شیان (څیزونه ) ښځې ارخ ته رغبت زیاتوی . حالانکه تر څو پورې چې ښځه په عدت کې وی نودې لپاره دنکاح نه لرې اوسیدل پکار دی .نودالله ﷻ لپاره دې معتده ددې څیزونو نه پرهیز کوی .چه دا شیان (څیزونه ) په حرام فعل کې داخته کیدو سبب جوړ نشی .

① او په طریقه د صحت سره ثابته ده چې یوې معتدې دنبی نه د رانجو لګولو اجازت اوغوښتلو. نو نبی ﷺ ورته اجازت ورنکړو. ② او دام سلمه رضی الله عنها نه روایت دې چې «انها قالت امرأة جاءت إلى رسول الله ﷺ وقالت ان زوج ابنتی توفی وقد اشتکت عینها افنکحلها فقال رسول الله ﷺ لا مرتين اوثلاثا». حضرت ام سلمه رضی الله عنها فرمائی چې یو ښځه رسول الله ﷺ له راغله او عرض ئې اوکړو یارسو الله ﷺ الله ﷻ زما د لور خاوند وفات شوې دې. او دهغې سترګو ته تکلیف دې. آیا زه دهغې په سترګوکې رانجه واچوم.نو نبی ﷺ ورته وویل نه. داکلمه نبی ﷺ دوې [دوه] خله یا درې خلهٔ اوفرمائیله. د دې حدیث نه هم معلومیږی چې معتده به دا شیان (څیزونه ) نه استعمالوی .

قَالَ: إِلَّا مِنْ عُذْرٍ لِأَنَّ فِيهِ ضَرُورَةً او قدوری رحمه الله فرمائی . «إلا من عذر» نودا څکه چې په دې حالت کې ارتیا دې وَالْمُرَادُ الدَّوَاءُ لَا الزِّينَةُ (.او ( ددې نه ) زینت مقصود نه دې.( بلکه) دوائی ( علاج ) کول مراد دی وَلَوْ اعْتَادَتِ الدُّهْنَ اوکه ښځې ته د تیل لګولو عادت وی فَخَافَتْ وَجَعًا نو دې ته درد پره پیدا شوه فَإِنْ كَانَ ذَلِكَ أَمْرًا ظَاهِرًا يُبَاحُ لَهَا نوکه دا امرښکاره وی .نودې له به ( تیل لګول) مباح وی لِأَنَّ الْغَالِبَ كَالْوَاقِعِ چې غالب د واقع کیدلو پشان وی وَكَذَا لُبْسُ الْحَرِيرِ إِذَا احْتَاجَتْ إِلَيْهِ اوهم دغه ډول ریښم اغوستل.چه کله دې ته ارتیا وی لِعُذْرٍ لَا بَأْسَ بِهِ نود عذر په وجه هیڅ باک نشته

تشریح:- دقدوری قول «الامن عذر» یا د جامع صغیر دبیان مطابق «الا من وجع» مطلب دادې چې دمعتده لپاره درانجو او تیلو استعمال ، د دوائی په طور استعمال جائز دی . د زیب اوزینت په طور جائز نه دی . اوکه ښځه د تیلو لګولو عادتی وی اویه دې ویریږی که تیل اونه لګوی نو په سر به ئې درد راشی .نو په دې صورت کې که غالب ګمان داوی . چې دتیلو دنه لګولو په وجه به بیماره شی.نو غالب ګمان به دواقع کیدو پشان اوګرځولې شی او ددې اجازت به ورکړې شی ګنی نه.

ﺂ دغه ډول دعذر په وجه د ریښمو په اغوښتلو کې څه قباحت څه نشته دې. او امام مالک ﺍ معتده ته د تورو ریښمو اغوستلو اجازت ورکړې دې.

وَلَا تَخْتَضِبُ بِالْحِنَّاءِ او د حناء رنګ به نه استعمالوی . کرلولِمَا رَوَيْنَا د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ روایت کړو وَلَا تَلْبَسُ ثَوْبًا مَصْبُوغًا بِعُصْفُرٍ وَلَا بِزَعْفَرَانٍ اونه به داسې کپړه اغوندی .چه په کسم ( یو ډول سورګل) یا زعفران سره رنګ کړې شوې وی لِأَنَّهُ يَفُوحُ مِنْهُ رَائِحَةُ الطِّيبِ ددې نه خوشبو خیژی.

۱) أما المنع عن الإكتحال ففی حديث ام سلمة رضی الله عنها أخرجه البخاری فی الطلاق باب ۴۷ ومسلم فی الطلاق رقم ۶۰ وأبوداؤد فی الطلاق باب ۳۴ رقم ۲۲۹۹ والترمذی فی الطلاق باب ۱۸ رقم ۱۱۹۷ والنسائی فی الطلاق باب ۶۴ رقم ۳۳۰۷ وابن ماجه فی الطلاق باب ۸۵ رقم ۲۰۸۴)

فرمائي چې قول معروف دادې چې داسې ووايې چې زه ستا ارخ ته راغب یم یاداسې ووايي چې دا غوارم چې دواره په یوځاې اوسیږو یا ددې پشان بله خبره اوکړی . لکه معتد ه ته ووایي چې ته ډیره ښکلې ښځه یې ډیره نیکه یې. حاصل دا چې په اشاروکې دې ورته هر څه وائی خودنکاح تصریح دې نه کوی .

## دمطلقه رجعیه اومبتوته اومتوفی عنها زوجها لپاره د کور نه دوتلو احکام

وَلَا يَجُوزُ لِلْمُطَلَّقَةِ الرَّجْعِيَّةِ وَالْمَبْتُوتَةِ الْخُرُوجُ مِنْ بَيْتِهَا لَيْلًا وَلَا نَهَارًا او کومې ښځې ته چې طلاق رجعی ورکړې شو.یا بائنه ورکړې شو.( دې له) د خپل کور نه وتل په شپه یا ورځ کې جائز نه دی

حل اللغة: ① المبتوتة په طلاق بائن سره جدا شوې ښځه ② دارة: واقع کیدونکې ③ اختلعت:ښځه خلع اوکړی ،یعنی د مال په بدله طلاق واخلی ]

تشریح:- مسئله داده چې کومې ښځې ته طلاق رجعي یا بائن ورکړې شوې وی نوهغه دې د ورځې یا د شپې دهغه کور نه بهرنه اووځی په کوم کې چې دمفارقت په وخت کې دا اوسیدله. البته که داپه وتلو باندې مجبوره شی لکه دکور پریوتلو ویره وی یا دخپل خان یا مال دلوټ کیدو ویره وی یامالک مکان دا اوباسی خکه چې دا په کرایه باندې اوسیږی او اوس ئې د کرایه ور کاوه توان نه کیږی نو څه خبره نه ده.

وَالْمُتَوَفَّى عَنْهَا زَوْجُهَا تَخْرُجُ نَهَارًا وَبَعْضَ اللَّيْلِ او دچا چې خاوند مړشوې وی . هغه ټوله ورځ اوځه د شپې پورې وتلې شی وَلَا تَبِيتُ فِي غَيْرِ مَنْزِلِهَا .(لیکن) د خپل کور نه علاوه کې به شپه نه تیره وی

تشریح:- اودمتوفی عنها زوجها لپاره په ټوله ورځ کې اودشپې په څه برخه کې دکور نه دوتلو اجازت په شریعت کې شته دې البته داده چې دعدت شپې به هم په خپل کور کې تیروی په بل ځائې کې به نه تیروی .

أَمَّا الْمُطَلَّقَةُ بهرحال د مطلقه( ددې حکم دلیل دادې) فَلِقَوْلِهِ تَعَالَى {لَا تُخْرِجُوهُنَّ مِنْ بُيُوتِهِنَّ وَلَا يَخْرُجْنَ إِلَّا أَنْ يَأْتِينَ بِفَاحِشَةٍ مُبَيِّنَةٍ} چې الله تعالی فرمائیلی دی (( لَا تُخْرِجُوهُنَّ )) الآیه) یعنی دا ښځې ددوی ( د اوسیدلو د) کورونو نه مه اوباسئ:اونه دې دا ښځې پخپله اوځی .خوکه څه ښکاره بې حیائی اوکړی .( نو بله خبره ده) ( بیان القرآن)

تشریح:- دمطلقه ښځې لپاره دکور نه دبهر وتلو دلیل دالله ﷻ ارشاد دې چې ((يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ إِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَاءَ فَطَلِّقُوهُنَّ لِعِدَّتِهِنَّ وَأَحْصُوا الْعِدَّةَ وَاتَّقُوا اللَّهَ رَبَّكُمْ لَا تُخْرِجُوهُنَّ مِنْ بُيُوتِهِنَّ وَلَا يَخْرُجْنَ إِلَّا أَنْ يَأْتِينَ بِفَاحِشَةٍ مُبَيِّنَةٍ)) یعنی تاسو دالله ﷻ نه ویریږئ چې ستاسو رب دې او تاسو دابنځې د اوسیدو دکورونو نه مه اوباسئ؛(خکه چې سکنی د مطلقه دمنکوحه پشان واجب ده) او نه دې دغه ښځې په خپله اوځی البته دا چې په ښکاره بې حیائی؛ راتګ اوکړی نودا بیله خبره ده.مثلاً زنا ئې کړې وی یا دغلا دسزا لپاره بهر ته اوویستلې شی یادبعضې عالمانو د وینا مطابق ژبه ئې اوږده وی او هر وخت غم اوجګړې کوی .نوددې ویستل جائز دی (بیان القران).

قِيلَ الْفَاحِشَةُ نَفْسُ الْخُرُوجِ بعض وائی .چه فاحشه نفس وتل دی وَقِيلَ الزِّنَا او ونیلی شوی دی .چه زنا ده فَتَخْرُجُ لِإِقَامَةِ الْحَدِّ او اوځی به د حد قائمولو لپاره

تشریح:- دفاحشه د لفظ په تفسیر کې دعالمانو اختلاف دې ① دبعضې عالمانو رائې داده چې دفاحشه نه مراد نفس وتل دی . دا قول د ابراهیم نخعی رحمه الله دې اوهم دا قول امام اعظم رحمه الله او ابو حنیفه رحمه الله هم غوره کړې دې. په دې صورت کې به د آیت معنی شی . چې معتده ښځې دې دکور نه نه اوځی . مګر دا چې د دې وتل دفاحشه یعنی بې حیائې خبره وی . دا داسې ده لکه چې اوونیلې شی «لا یسب السنی ﷺ الا کافر ولا یزنی احد الا ان یکون فاسقا» یعنی نبی ته کنځل کفر دې. او زنا کول فسق دی ② اودبعضې حضراتو قول دې چې د فاحشې نه مراد زنا ده. نواوس مطلب دا شو چې معتده ښځې به نه اوځی . البته داکه دوئ



زنا کړې وی نو دحد جاری کاوه لپاره به دوئ ویستلې شی . داقول دابن مسعود رضی الله عنه دې. او امام ابویوسف رحمه الله داغوره کړې دې. ③اوابن عباس رضی الله عنه فرمائی چې د فاحشه نه مراد دښځې ناشزه اونافرمانه کیدل دی .

وَأَمَّا الْمُتَوَفَّى عَنْهَا زَوْجُهَا پاتې شوه هغه ښځه چې ددې خاوند مړشوې وی فَلِأَنَّهُ لَا نَفَقَةَ لَهَا .نو خکه چې ددې هیڅ نفقه نشته فَتَحْتَاجُ إِلَى الْخُرُوجِ نَهَارًا لِطَلَبِ الْمَعَاشِ نو په ورځ کې د روزئ لټون کاوه لپاره د وتلو محتاج ده وَقَدْ يَمْتَدُّ إِلَى أَنْ يَهْجُمَ اللَّيْلُ او کله د معاش طلب د شپې پورې هم اوږدیږی

تشریح:- دمتوفی عنها زوجها په ورځ کې او دشپې په څه برخه کې دکور نه د وتلو په اجازت باندې دلیل دا دې.چه متوفی عنها زوجها لپاره نفقه نه وی . نوځکه دطلب معاش په غرض ددې لپاره دکور نه دوتلو ارتیا پیښیږی .اوبعضې وخت په کار کاوه کې شپه شی . او څه برخه تیره شی نو ځګه ورته د ورځې سره دشپې په څه برخه کې دبهر اېساریدو اجازت ورکړې شوې دې.

وَلَا كَذَلِكَ الْمُطَلَّقَةُ او مطلقه داسې نه ده لِأَنَّ النَّفَقَةَ دَارَّةٌ عَلَيْهَا مِنْ مَالِ زَوْجِهَا خکه چې نفقه دې ته برابر ( مسلسل) ددې د خاوند د مال نه په دې باندې جاری وی

تشریح:- دمطلقه دا حال نه دې خکه چې دعدت په زمانه کې ددې نفقه په خاوند باندې وی نوکور نه دوتلو څه ارتیا نشته دې. دمتوفی عنها زوجها دخروج تائید ددې حدیث نه هم کیږی . ﴿قال رسول الله ﷺ للتی قتل زوجها ،هی فریعة بن مالك ابن ابی سنان اخت ابی سعید الخدری رضی الله عنه لماقتل زوجها جاءت الی رسول الله ﷺ استاذنت ان تعتد فی بنی خدره لا فی بیت زوجها فاذن لها رسول الله ﷺ فلما خرجت دعا ها رسول الله ﷺ فقال لها اعیدی المسئلة فاعادت فقال لا حتی یبلغ الکتاب اجله یعنی لا تخرجی حتی تنقضی عدتك﴾ یعنی رسول الله ﷺ هغه ښځې ته اوفرمائیل چې دچا خاوند قتل شوې وو. هغه فریعه بن مالك بن ابی سنان رضی الله عنه وه.او ابو سعید خدری رضی الله عنه خور وه.کله چې ددې خاوند قتل کړې شو نورسول الله ﷺ ته راغله اویه بنی خدره کې ئې دعدت تیرولو اجازت غوښتلو.دخپل خاوند په کورکې ئې وخت نه تیرولو. نورسول الله ﷺ ورته اجازت ورکړو.کله چې هغه اووتله لاړه نو نبی کریم ﷺ ورته آواز ورکړو او ورته ئې اوفرمائیل چې مسئله دوباره بیانکړه.هغې دغه مسئله دوباره بیان کړه. نونبی کریم ﷺ ورته اوفرمائیل چې نه (ستا لپاره وتل جائز نه دی ) تر دې چې دعدت زمانه ختمه شی . یعنی دخپل خاوند دکور نه مه اوځه تردې چې ستا عدت پوره شی .

ددې حدیث نه دوې [دوه] خبرې معلومې شوې یو دا چې په متوفی عنها زوجها باندې د خاوند په کور کې عدت تیرول واجب دی .دویمه داچه دخپل ارتیا لپاره وتلې شی .خکه چې دا ښځه دفتوی طلبولو لپاره دربار رسالت ته حاضری شوې وه .او نبی کریم ﷺ په دې باندې څه انکار اونکړلو.

حَتَّى لَوِ اخْتَلَعَتْ عَلَى نَفَقَةِ عِدَّتِهَا تردې که چرې دې د خپل عدت په نفقه باندې خلع اوکړله قِيلَ: إِنَّهَا تَخْرُجُ نَهَارًا نو بعض حضرات وائی .چه په ورځ کې به اوځی وَقِيلَ لَا تَخْرُجُ او بعض وائی .چه نه به اوځی . لِأَنَّهَا أَسْقَطَتْ حَقَّهَا خکه چې دې خپل حق ( پخپله) ساقط کړو فَلَا يَبْطُلُ بِهِ حَقٌّ عَلَيْهَا نو په دې وجه به دا حق نه باطلیږی .

تشریح:- په آخر کې صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی که یو ښځې دخپل عدت نفقه باندې خلع اوکړه. (۱) نوبعضې حضراتو فرمائیلی دی چې د روزئ طلبولو په غرض ددې لپاره هم دکور نه بهر دوتلو اجازت شته دې. (۲) اوبعضې حضراتو ددې ا جازت نه دې ورکړې. ددوئ دلیل دادې چې دې ښځې خپل حق دنفقه په خپله ساقط کړلو. نوپه دې چې دشریعت کوم حق واجب وو یعنی عدم خروج هغه به نه باطلیږی .

## په فرقت واقع کیدونکې کور کې عدت تیرول

وَعَلَى الْمُعْتَدَّةِ أَنْ تَعْتَدَّ فِي الْمَنْزِلِ او په معتده باندې واجب دی .چه په هغه کورکې عدت تیر کړی الَّذِي يُضَافُ إِلَيْهَا بِالسُّكْنَى حَالَ وُقُوعِ الْفُرْقَةِ وَالْمَوْتِ کوم چې ددې ارخ ته په اوسیدو سره منسوب کولې شی . د

جدایئ اود مرګ په وخت لِقَوْلِهٖ تَعَالٰی {لَا تُخْرِجُوْهُنَّ مِنْ بُيُوْتِهِنَّ} په وجه د قول د الله تعالی ( چه) «لَا تُخْرِجُوْهُنَّ» الایه» یعنی دا ښځې ددوی د کورونو نه مه اوباسئ وَالْبَيْتُ الْمُضَافُ إِلَيْهَا هُوَ الْبَيْتُ الَّذِيْ تَسْكُنُهٗ او ددوی کور هغه دې په کوم کې چې دوی اوسیدلې وَهٰذَا الْوِزَارَتُ أَهْلَهَا نوکه دا ښځه دخپل مورپلار د زیارت لپاره لاړله وَطَلَّقَهَا زَوْجُهَا او دلته کې خاوند دې ته طلاق ورکړو كَانَ عَلَيْهَا أَنْ تَعُوْدَ إِلٰى مَنْزِلِهَا نو په دې ښځه باندې واجب دی چه واپس ( د خاوند) کورته راشی فَتَعْتَدَّ فِيْهِ او په دې کې عدت تیر کړی

حل اللغة* ① المنزل: کور ② الفرقة: جدائی ]

تشریح:- مسئله داده چې معتده ښځه چې د خاوند دمرګ په وخت کې اود فرقت واقع کیدو په وخت کې په کوم کور کې اوسیدله نو هم په هغې کې به عدت تیروی . دلیل دادې چې الله ﷻ فرمائی (()) اود ښځې کور هغه دې په کوم کې چې اوسیږی .

ﯜ اوسکنی یعنی اوسیدل عام دی .که په طریقه دملکیت وی او که په استعاره وی اوکه په کرایه وی . هم دا وجه ده که ښځه خپلې مور کره تلې وی او خاوند هم هلته دې ته طلاق ورکړلو نو په دې ښځه واجب دی چه واپس خپل کور ته راشی اوعدت په هغې کې تیر کړی .

وَقَالَ عَلَيْهِ الصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ لِلَّتِيْ قُتِلَ زَوْجُهَا او نبی کریم ﷺ هغه ښځې ته چې ددې خاوند شهید شوې وو .داسې فرمائیلې وو {أُسْكُنِيْ فِيْ بَيْتِكِ چې ته هم په دې کورکې اوسیږه. حَتّٰى يَبْلُغَ الْكِتَابُ أَجَلَهٗ} [1] تردې پورې چه د قرآن موافق عدت پوره شی .

تشریح:- اونبی کریم ﷺ هغه ښځې ته چې خاوند ئې شهید شوې وو. اوفرمائیل چې ته هم خپل دې کور کې اوسیږه تردې چې الله ﷻ د حکم مطابق ستا عدت پوره شی .

## دوارثانو ښځې لره دکور نه وتل

وَإِنْ كَانَ نَصِيْبُهَا مِنْ دَارِ الْمَيِّتِ لَا يَكْفِيْهَا اوکه د مړشوی خاوند په کورکې ددې ښځې برخه ددې لپاره ناکافی وی فَأَخْرَجَهَا الْوَرَثَةُ مِنْ نَصِيْبِهِمْ او وارثان دا د خپلې برخې نه اوباسی انْتَقَلَتْ نودا ښځه دې منتقل شی

حل اللغة* ① نصیب: حصه ② متاع: سامان ③ سقوط: ساقط کیدل ④ المنزل: کور]

تشریح:- مسئله داده چې د خاوند په کورکې دښځې دمیراث برخه دومره وی چې دا په هغې کې اوسیدې نشی .او نور واراثان هم خپله برخه کې د اوسیدو اجازت نه ورکوی . نو په دې صورت کې دا ښځه بل کورته منتقل کیدېشی .

لِأَنَّ هٰذَا الْانْتِقَالَ بِعُذْرٍ ځکه چې ( دا) منتقل کیدل د عذر په وجه دی وَالْعِبَادَاتُ تُؤَثِّرُ فِيْهَا الْأَعْذَارُ او په عباداتو کې عذرونه موثر وی

تشریح:- دلیل دادې چې ددې وتل دعذر په وجه دی .اوپه عباداتو کې عذر متعبر دې . نوځکه دلته هم عذر معتبر دې. اوپه دې باندې یودلیل دا دې.چه د حضرت عمر فاروق ﷺ دشهادت نه روسته حضرت علی ﷺ خپله لور ام کلثوم ﷺ دعدت دکور نه منتقل کړې وه. او دا ئې اوفرمائیل چې حضرت عمر فاروق ﷺ دخلیفه کیدو په وجه په سرکاری کور کې اوسیدلو او د دوی د وفات نه روسته داکور د دوهم خلیفه حضرت عثمان ﷺ په استعمال کې راغلو.ددې امله دحضرت ام کلثوم ﷺ (زوجه عمر فاروق ﷺ ) دده کور نه دوتلو اړتیا پیښ شو. (عینی شرح هدایه).

(۱) من حدیث فریعة بنت مالک بن سنان اخرجه ابوداود فی الطلاق باب ٤٤ رقم ۲۰۳۲ والترمذی فی الطلاق باب ۳۲ رقم ۱۲۰٤ والنسائی فی الطلاق باب ٦۰ رقم ۱۳۰ وابن ماجه فی الطلاق باب ۸ رقم ۱۳۰۲ والدارمی فی الطلاق باب ٤۱).



فَصَارَ كَمَا إِذَا خَافَتْ عَلٰى مَتَاعِهَا او ( دا) داسې شوه.لکه چې ښځې ته د خپل سامان یره وی أَوْ خَافَتْ سُقُوْطَ الْمَنْزِلِ یا د کور غورزیدلو یره وی أَوْ كَانَتْ فِيْهَا بِأَجْرٍ یا په دې کورکې په کرایه باندې اوسیدله وَلَا تَجِدُ مَا تُؤَدِّيْهِ او (اوس) دا کرایه نشی اداکولې.

تشریح:- اودا داسې ده لکه چې ښځه په خپل سامان ویریږی یا د کور په راغورزیدو ویریږی یا ښځې ته دا ویره وی چې زما دکور دکرایه ور کاوه توان نشته.نو لکه ځنګه چې په دې صورتونو کې دمعتده وفات لپاره وتل جائز دی . نودغه شان په ذکر شوی صورتونو کې ورله هم منتقل کیدل جائزدی .

## دطلاق بائن یا مغلظه سره په فرقت کې دپردې اچول

ثُمَّ إِنْ وَقَعَتِ الْفُرْقَةُ بِطَلَاقٍ بَائِنٍ أَوْ ثَلَاثٍ بیا که طلاق بائن یا د درې طلاقونو په وجه فرقت واقع شو لَا بُدَّ مِنْ سُتْرَةٍ بَيْنَهُمَا .نود دواړو په مینځ کې پرده ضروری ده ثُمَّ لَا بَأْسَ بِهٖ . بیا( په یوکورکې په اوسیدوکې) باك نشته

تشریح:- مسئله داده که فرقت په طلاق بائن یا درې طلاقوسره واقع شوې وی نودعدت په زمانه کې د ښځې او خاوند په مینځ کې پرده لګول ضروری دی .دپردې کاوه نه روسته دواړه په یوکور کې اوسیدې شی

لِأَنَّهٗ مُعْتَرِفٌ بِالْحُرْمَةِ ځکه چې خاوند ددې د حرمت اقراری دې إِلَّا أَنْ يَكُوْنَ فَاسِقًا يُخَافُ عَلَيْهَا مِنْهُ خوکه دا سړې فاسق وی .چه په ده سره د ښځې یره کیدای شی فَحِيْنَئِذٍ تَخْرُجُ نو دغه وخت دې دا ښځه ( ددې کور نه اوځی ) لِأَنَّهٗ عُذْرٌ ځکه چې دا عذر دې وَلَا تَخْرُجُ عَمَّا انْتَقَلَتْ إِلَيْهِ او کوم کور ته چې منتقل شوه.د هغه ځائې نه دې نه اوځی

تشریح:- دلیل دادې چې سړې ددې ښځې دحرمت اقرار کونکې دې. نو ځکه به دې دحرام فعل نه بچ کیږی . اوکه داشرعی عذر دې او چې کوم کور ته منتقل شی دهغې ځخه به بغیر عذره منتقل کیږی .

وَالْأَوْلٰى أَنْ يَخْرُجَ هُوَ او غوره داده.چه سړې پخپله اوځی وَيَتْرُكَهَا او ښځه ( هم دلته کې ) پریږدی .

تشریح:- علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی چې مناسب داده که کور یو وی اوهغه هم تنګ وی نو په دې صورت کې د خاوند لپاره دعدت په زمانه کې دکور نه بهر اوسیدل پکار دی .اوښځه دې په دغه کور کې عدت تیرکړی . ځکه چې د خاوند په کور کې د معتده اوسیدل واجب دی . اودسړی اوسیدل په کې مباح دی او دواجب خیال ساتل غوره دې.

## د رکاوټ پیدا کولو لپاره دریمې ښځې اوسول

وَإِنْ جَعَلَا بَيْنَهُمَا امْرَأَةً ثِقَةً تَقْدِرُ عَلَى الْحَيْلُوْلَةِ اوکه دواړو خپل منځ کې یو ثقه ښځه حائل کړله.چه دې ته په منځ کې د منع کاوه قدرت شته فَحَسَنٌ نو ښه ده وَإِنْ ضَاقَ عَلَيْهِمَا الْمَنْزِلُ اوکه دا کور په دواړو باندې تنګ وی فَلْتَخْرُجْ نو ښځې له وتل پکار دی وَالْأَوْلٰى خُرُوْجُهٗ او غوره د سړی وتل دی

حل اللغة* ① الحیلولة: حائل کیدل ② ثقة: معتمده ③ ضاق: تنګ شو ④ مصر: ښار ]

تشریح:- مسئله دا ده.که زوجینوپه خپل مینځ ځوك اعتمادی ښځه حائله کړه.کومه چې د دوی په مینځ کې رکاوټ پیدا کولې شی .نوښه خبره ده.اوکه هغه ځائې په دواړو باندې تنګ وی .چه د دواړو اوسیدل په کې ګران وی .نودښځې لپاره بل کورته منتقل کیدل جائزدی .خوزیاته غوره دا ده.چه سړې لاړ شی . او ښځه هم په دغه کورکې پاتې شی .

وَإِذَا خَرَجَتِ الْمَرْأَةُ مَعَ زَوْجِهَا إِلٰى مَكَّةَ اوکه کومه ښځه خپل خاوند سره مکې معظمې پورې لاړله فَطَلَّقَهَا ثَلَاثًا نو خاوند دې ته په غیرمصرکې درې طلاقه ورکړل. أَوْ مَاتَ عَنْهَا فِيْ غَيْرِ مِصْرٍ یا خاوند دا پریخودله.او مړشو فَإِنْ

كَانَ بَيْنَهَا وَبَيْنَ مِصْرِهَا أَقَلُّ مِنْ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ نوکه (ددې مقام نه) د ښځې او ددې د خاوند په منځ کې د درې ورځو نه کم فاصله وی رَجَعَتْ إِلَى مِصْرِهَا نو خپل ښار ارخ ته دې واپس راشی

تشريح:- مسئله داده چې ښځه دخاوندسره مکې ته په سفر روانه وه په لاره کې ورته خاوند په داسې ځائې کې درې طلاقه ورکړل یا خاوند مړشو. چرته چې آبادی نه وی نو ددې حکم دادې که ددغه ځائې نه د خاوند کور ته د درې ورځو نه کمه فاصله وی نو دا به واپس خپل ښار ته لاړه شی . اوهلته چې لاړه شی نوعدت به پوره کړی . اگر دکوم ځائې دتلو اراده ئې کړې وی هغه ددې مقام نه د درې ورځو یا ددې نه دکمو ورځو په فاصله باندې پروت وی .

لِأَنَّهُ لَيْسَ بِابْتِدَاءِ الْخُرُوْجِ مَعْنًى خکه چې دا وتل معنی ابتدائی وتل نه دی بَلْ هُوَ بِنَاءٌ بلکه په (په ړومبی سفر باندې) مبنی دی .

تشريح:- دلیل دادې چې دا وتل ابتداء خروج نه دې.بلکه په اولنی خروج باندې مبنی دې نوځکه کور ته په واپس راتلو کې څه قباحت نشته دې.

## د درې ورځو دفاصلې صورت

وَإِنْ كَانَتْ مَسِيْرَةَ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ اوه د درې ورځو لاره وی إِنْ شَاءَتْ رَجَعَتْ نوکه غواړی واپس دې شی وَإِنْ شَاءَتْ مَضَتْ اوکه غواړی نو( مکې معظمې ته دې) لاړه شی . سَوَاءٌ كَانَ مَعَهَا وَلِيٌّ أَوْلَمْ يَكُنْ که ددې سره ولی وی .اوکه نه وی مَعْنَاهُ إِذَا كَانَ إِلَى الْمَقْصِدِ ثَلَاثَةُ أَيَّامٍ أَيْضًا او ددې مسئلې معنی داده.چه کله مقصد ارخ ته هم درې ورځې مسافه وی .

حل اللغة: ① مسيرة فاصله ② المكث: وخت تیرول ③ الخروج: وتل ④ الاعتداد: عدت پوره کول ⑤ منزل: کور]

تشريح:- مسئله داده چې دښځې او ددې د خاوند دښار په مینځ کې د درې ورځو فاصله وی او چرته چې ددې د تلوار وی هغه هم د درې ورځو په مسافه سره واقع وی نو دې ښځې ته اختیار دې.که غواړی نود خاوند وطن ته دې واپس شی . اوکه غواړی نودکوم ځائې دتلو اراده چې ئې کړې وی هغې ته دې خپل سفر جاری اوساتی . برابره ده که ولی ورسره وی اوکه نه وی .

لِأَنَّ الْمُكْثَ فِي ذٰلِكَ الْمَكَانِ أَخْوَفُ عَلَيْهَا مِنَ الْخُرُوْجِ خکه چې په دې کور کې اوسیدل د تللو په نسبت ددې په حق کې زیاته یره ده إِلَّا أَنَّ الرُّجُوْعَ أَوْلَى .مگر داچه ( خپل ښار ته ) راتگ زیات غوره دی لِيَكُوْنَ الْاِعْتِدَادُ فِي مَنْزِلِ الزَّوْجِ چې د خاوند په کور کې خپل عدت پوره کړی .

تشريح:- دلیل دادې چې دلته په ځنګل کې ایساریدلو کې دتلو په نسبت زیاته ویره ده. نوخپل وطن ته واپس کیدل زیات بهتر شو چې د خاوند په کور کې عدت پوره کړی . البته دا چې د خاوند ښارته د درې ورځو مسافه وی اوکوم ارخ ته چې دا روانه وه هغې ته د درې ور ځو نه کمه فاصله پاتې وی نو په دې صورت کې دې دا ښځه خپل مقصود ارخ ته ته لاړه شی .

## دښار په کور کې دوفات اوطلاق نه روسته عدت تیرول

قَالَ امام محمد (رحمه الله) ( په جامع صغیرکی ) فرمائیلی دی . إِلَّا أَنْ يَكُوْنَ طَلَّقَهَا خوکه خاوند دې ښځې ته په کوم یو ښارکې درې طلاقه ورکړل أَوْمَاتَ عَنْهَا زَوْجُهَا فِي مِصْرٍ یا ئې پریخودله.او مړشو فَإِنَّهَا لَا تَخْرُجُ نو ښځه به ( ددې ښار نه) بهر ته نه اوځی حَتَّى تَعْتَدَّ ثُمَّ تَخْرُجَ تردې چې خپل عدت پوره کړی .بیا دې اوځی إِنْ كَانَ



مَعَهَا مَحْرَمٌ په دې شرط چې څوک محرم ورسره وی وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ (رحمه الله) (۱) اودا د امام ابوحنيفه (رحمه الله) په نيز دی

حل اللغة: ① الغربة: مسافری ② وحشة: ویره ③ الوحدة: ځانله والې ④ مصر: ښار]

تشريح:- وړاندې مصنف (رحمه الله) وویل که مفارقت په غیر مصر (ځنګل) کې واقع شی او د دې ښځې د وطن اومنزل مقصود کې هر یو ځائې ته د درې ورځو مسافه وو. نو په دې صورت کې دې ته اختیار دې که وطن ته واپس کیږی او که خپل منزل مقصود طر ف ته ځی .

امام محمد (رحمه الله) ددې حکم نه استثناء کوی اوفرمائی چې که مفارقت په سفر کښې په آبادئی کې واقع شوې وی .نودا ښځه به ددې آبادئی نه نه اوځی . تر دې چې عدت پوره کړی . بیا دعدت پوره کاوه نه روسته که دې سره محرم وی نوتلې شی دا حکم دامام ابوحنيفه (رحمه الله) په نیزدې.

وَقَالَ أَبُوْيُوْسُفَ وَمُحَمَّدٌ (رحمهما الله) او امام ابویوسف او امام محمد (رحمه الله) فرمائی إِنْ كَانَ مَعَهَا مَحْرَمٌ فَلَا بَأْسَ که دښځې سره څوک محرم موجود وی .نوهیڅ باك نشته بِأَنْ تَخْرُجَ مِنَ الْمِصْرِ قَبْلَ أَنْ تَعْتَدَّ چې دا دعدت پوره کاوه نه وړاندې ددې خاوند( د کورنه) لاړه شی لَهُمَا .د صاحبينو (رحمهما الله) دلیل دادې أَنَّ نَفْسَ الْخُرُوْجِ مُبَاحٌ دَفْعًا لِأَذَى الْغُرْبَةِ وَوَحْشَةِ الْوَحْدَةِ چې خالی وتل د مسافرئ د تکلیف اود ځانله والی د یرې لرې کاوه لپاره مباح دی وَإِنَّمَا الْحُرْمَةُ لِلسَّفَرِ البته سفر کول حرام وو وَقَدِ ارْتَفَعَتْ بِالْمَحْرَمِ .نودا محرم سره کیدلو په وجه لرې کړې شو

تشريح:- صاحبين (رحمهما الله) فرمائی که ددې ښځې سره محرم وی نو دعدت پوره کاوه نه وړاندې هم ددغه آبادئی نه وتلې شی .د دوی دلیل دا دې چې دسفر دتکلیف او ځانله والی وحشت لرې کاوه لپاره نفس خروج مباح او جائز دې. په اتفاق سره که دسفر دمودې نه فاصله کمه وی نوبیه سفر وتلې شی . حاصل دا چې دسفر تکلیف او ځانله والی وحشت یو عذر دې. او دعذر د امله دمعتده ښځې لپاره دکور نه وتل جائز وی . زیات نه زیات ته داونیلې شی . چې دسفر د مسافه په اندازه وتل حرام دی . نو ځواب دادې چې دمحرم د وجود د امله دسفر کولو حرمت لرې شو. نو دمحرم سره سفر کول داسې شو لکه چې دسفر د مسافه نه دکمې فاصلې په صورت کې بغیر محرمه وتل.

وله اود امام ابوحنيفه (رحمه الله) دلیل دادې. أَنَّ الْعِدَّةَ أَمْنَعُ مِنَ الْخُرُوْجِ مِنْ عَدَمِ الْمَحْرَمِ چې عدت زیات منع کونکې دې د وتلو نه بغیر د محرم نه فَإِنَّ لِلْمَرْأَةِ أَنْ تَخْرُجَ إِلَى مَا دُوْنَ السَّفَرِ بِغَيْرِ مَحْرَمٍ خکه چې د ښځه د پاره جایز دی چې دا اوځی د سفر لپاره بغیر د محرم نه وَلَيْسَ لِلْمُعْتَدَّةِ ذٰلِكَ او جایز نه دی د معتدې لپاره دا فَلَمَّا حَرُمَ عَلَيْهَا الْخُرُوْجُ إِلَى السَّفَرِ بِغَيْرِ الْمَحْرَمِ نو هر کله چې حرام دی په دې باندې وتل سفر ته بغیر د محرم نه فَفِي الْعِدَّةِ أَوْلَى نو په عدت کښې وتل به په درجه اولی حرام وی.

تشريح:- دامام ابوحنيفه (رحمه الله) دلیل دادې چې بغیر دمحرمه دسفر کول نه دمعتده دکور نه وتل زیات ممنوع دی . هم دا وجه ده چې د درې ورځو نه کمه فاصله بغیر محرمه کولې شی .خو دمعتده لپاره داهم جائز نه دی . نوهرکله چې ښځې لپاره بغیر د محرمه دسفر په اندازه مسافه کول حرام دی نوبه عدت کې به ددې ښځې وتل خامخا حرام وی .والله اعلم

(۱) القول الراجح هو قول أبى حنيفة (رحمه الله) كذا فى فتح القدير(١٦٩\٤) والدر المختار(٦٧٦\٢) والهندية (٥٣٦\١)والبحر الرائق (١٥٥\٤) نقلاً عن القول الراجح (٣٧٣\١)-

## باب ثبوت النسب

ژباړه:- (دا) باب د نسب (د ثبوت په بيان كښې) دې.

**د نكاح نه شپږ مياشتې روسته پيدا شوي ب چې به د ناكح وي. او په ده به مهرواجب وي**

**وَمَنْ قَالَ** اوكوم سړی چې دا اووئيل **إِنْ تَزَوَّجْتُ فُلَانَةَ فَهِيَ طَالِقٌ** كه زه فلانئ ښځې سره نكاح اوكړم.نو دا دې طلاقه وی **فَتَزَوَّجَهَا فَوَلَدَتْ وَلَدًا لِسِتَّةِ أَشْهُرٍ مِنْ يَوْمِ تَزَوَّجَهَا** بيا ئې ددې سره نكاح اوكړله.د نكاح د وخت نه (پس) په شپږمه مياشت دې بچې راوړو( پيدا شو). **فَهُوَ ابْنُهُ** نودا بچې به ددې سړی زوې وی **وَعَلَيْهِ الْمَهْرُ** او په ده به پوره مهر واجب وی

**حل اللغة:** ① **العلوق:** رحم كې د نطفې قرارى اود بچى د پيدا كيدو مراحل پيل كيدل ② **يخالط:** گډيږى ③ واقف موافق شو ④ **يحتاط:** احتياط كولې شى ]

**تشريح:**- مسئله داده.چه يوكس اووئيل.كه مادې فلانئ ښځې سره نكاح اوكړله.نودا دې طلاقه وی .بيا دې كس دې ښځې سره نكاح اوكړله.اوددې ښځې د نكاح د وخت نه شپږ مياشتې روسته يو ماشوم پيدا شو .نودا ماشوم به دده زوې وی .يعنی د بچى نسب به دده نه ثابت وی .اوپه دې سړی به پوره مهرواجب وی . اوكه د شپږ مياشتې نه په زياته موده كې ماشوم پيداشو.يا د شپږ مياشتونه په كمه موده كې پيدا شو.نو ددې سړی څخه به نسب نه ثابتيږی .په ړومبی صورت كې خوبه په دې وجه ثابت نه وی .چه هركله بچې د شپږومياشتونه په زياته موده كې پيداشو.نوممكن ده.چه علوق (نطفه) د طلاق نه روسته شوې وی .نونه به نسب ثابتيږی .او نه به په ښځه باندې عدت واجب وی .او په دوهم صورت كې نسب په دې وجه نه ثابتيږی .چه هركله بچې د نكاح د وخت نه د شپږمياشتونه په كمه موده كې پيدا شو.نو يقيناً چې علوق (نطفه) د نكاح نه مخكې شوې دې.نو په دې صورت كې به هم نسب نه ثابتيږی .

**أَمَّا النَّسَبُ فَلِأَنَّهَا فِرَاشُهُ** .بهرحال نسب خو په څكه ( دده نه ثابتيږی ) چې دا ښځې د دې سړی فراش دې **لِأَنَّهَا لَمَّا جَاءَتْ بِالْوَلَدِ لِسِتَّةِ أَشْهُرٍ مِنْ وَقْتِ النِّكَاحِ** څكه چې هركله د نكاح د وخت نه ( پس) په شپږمه مياشت دې بچې راوړو **فَقَدْ جَاءَتْ بِهِ لِأَقَلَّ مِنْهَا مِنْ وَقْتِ الطَّلَاقِ** نود طلاق د وخت نه د شپږ مياشتو نه په كم كې ئې بچې راوړو **فَكَانَ الْعُلُوقُ قَبْلَهُ فِي حَالَةِ النِّكَاحِ** نو علوق د طلاق نه وړاندې د نكاح په حالت كې شو **وَالتَّصَوُّرُ ثَابِتٌ** او امكان هم ثابت دې **بِأَنْ تَزَوَّجَهَا وَهُوَ يُخَالِطُهَا** په دې طريقه چې سړی دې ښځې سره د وطى په حالت كې نكاح اوكړه **فَوَافَقَ الْإِنْزَالُ النِّكَاحَ** او په نكاح كيدلو باندې انزال اوشو .او نطفې ځانې اونيولو **وَالنَّسَبُ يُحْتَاطُ فِي إِثْبَاتِهِ** او په نسب ثابتولو كې احتياط كولاى شى

**تشريح:**- دمتن په مسئله كې د نسب د ثبوت دليل دادې.چه ښځه دده فراش دې.اونبى كريمﷺ فرمائيلى دی. «الولد للفراش وللعاهر الحجر» يعنى بچې د صاحب فراش وی .او زانى لپاره كانړى وی .او امام كرخى د فراش تفسير په عقدسره كړې دې.يعنى بچې د نكاح د عقد والا لپاره وی .
اوصاحب دهدايه ددې دليل په وضاحت كې فرمائى .چه هركله د نكاح د وخت نه شپږمياشتې روسته بچې پيداشو.نو لازماً به د طلاق د وخت نه د شپږ مياشتونه دكم ولادت وی .اوهركله چې د طلاق د وخت نه شپږ مياشتې نه په كم كې ماشوم پيدا شى . نوگويا چې د نكاح په حالت كې د طلاق نه وړاندې علوق د وطى شوې دې.اود وطى اود علوق (نطفه) امكان هم موجود دې.په دې طريقه چې ددې ښځې په نس باندې ملاست وی .او نكاح ئې كړې وی .او خلگ وايجاب اوقبول اوريدلې هم وی .اود نكاح كيدلو نه روسته انزال شوې وی .اونطفه جوړه شوې وی .



**وَأَمَّا الْمَهْرُ فَلِأَنَّهُ لَمَّا ثَبَتَ النَّسَبُ مِنْهُ جُعِلَ وَاطِئًا حُكْمًا** او بهرحال مهرڅكه (واجب دې) چې كله دده نه نسب ثابت شو **فَتَأَكَّدَ الْمَهْرُ بِهِ** .نو حكماً وطى كونكې اوگڼرلې شو.نو په دې وجه به پوره مهرثابت وی .

**تشريح:**- په خاوند به پوره مهرڅكه واجب وی .چه هركله دده نه نسب ثابت شو.نوگويا دې په حكم شرعى سره وطى كونكې شو. اوچونكه په وطى كاوه سره پوره مهر واجبيږی .په دې وجه په دې صورت كې هم پوره مهرواجبيږی .

**د مطلقه رجعيه د دوې [دوه] كاله روسته پيداشوی بچى نسب**

**قال** فرمائی **وَيَثْبُتُ نَسَبُ وَلَدِ الْمُطَلَّقَةِ الرَّجْعِيَّةِ** چې كومې ښځې ته طلاق رجعى وركړې شو.ددې د بچى نسب به ثابت وی . **إِذَا جَاءَتْ بِهِ لِسَنَتَيْنِ أَوْ أَكْثَرَ** په دې شرط چې دې بچې دوې [دوه] كاله يا ددوې [دوه] كالونه په زيات كې راوړلې وی ( پيداشوې وی ). **مَا لَمْ تُقِرَّ بِانْقِضَاءِ عِدَّتِهَا** چې تركومې پورې ښځې دخپل عدت تيريدلو اقرار نه وی كړې.

**تشريح:**- صورت د مسئلې دادې.چه يوسړی خپلې ښځې ته طلاق رجعى وركړلو.بيا ددې ښځې د طلاق د وخت نه دوې [دوه] كاله روسته بچې پيدا شو.نود خاوند به ددې بچى نسب ثابت وی .په دې شرط چې ښځې دعدت تيريدلو اقرار نه وې كړې.

**لِاحْتِمَالِ الْعُلُوقِ فِي حَالَةِ الْعِدَّةِ** څكه احتمال شته.چه د عدت په حالت كې نطفې ځانې نيولې وی **لِجَوَازِ أَنَّهَا تَكُونُ مُمْتَدَّةَ الطُّهْرِ** .څكه ممكن ده.چه دا ښځه ممتدۀ طهر وی

**تشريح:**- دليل دادې.چه كيدلې شى .دا ښځه ممتده طهر والاوی .اود طهر اوگديدلو په وجه ددې عدت اوگد شوې وی .او خاوند دعدت په زمانه كې وطى كړې وی .څكه چې د معتده رجعيه ښځې سره وطى حلال ده.نو په دې سره به رجعت هم ثابت شى .اود بچى نسب به هم ثابت وی .

**وَإِنْ جَاءَتْ بِهِ لِأَقَلَّ مِنْ سَنَتَيْنِ** اوكه دې ښځې د دوې [دوه] كالو نه په كم كې بچې راوړلې وی **بَانَتْ مِنْ زَوْجِهَا** نودا به د خپل خاوند نه بائنه وی . **بِانْقِضَاءِ الْعِدَّةِ** د عدت تيريدلو په وجه

**تشريح:**- اوكه د دوې [دوه] كاله نه په كمه موده كې ماشوم پيدا شو.نو ښځه به په خپل خاوند باندې بائنه شى .او ددې بچى نسب به ددې د خاوند نه ثابت شى .بائنه به څكه شى .چه د وضع حمل په وجه بائنه كيږی .

**وَثَبَتَ نَسَبُهُ** اود بچى نسب به ( د خاوند نه) ثابت وی **لِوُجُودِ الْعُلُوقِ فِي النِّكَاحِ** څكه چې علوق په نكاح كې وموندې شو **أَوْ فِي الْعِدَّةِ** يا په عدت كې **فَلَا يَصِيرُ مُرَاجِعًا** او خاوند به رجعت كونكې نه وی **لِأَنَّهُ يَحْتَمِلُ الْعُلُوقَ قَبْلَ الطَّلَاقِ** څكه چې د علوق قبل الطلاق احتمال شته **وَيَحْتَمِلُ بَعْدَهُ فَلَا يَصِيرُ مُرَاجِعًا بِالشَّكِّ**.اود بعد الطلاق احتمال هم دې.نو خاوند به دشك په وجه رجعت كونكې نه وی

**تشريح:**- اود نسب د ثبوت وجه داده.كه وطى د نكاح په حالت كې شوې وی .نوبيا خو ښكاره خبره ده.او كه په عدت كې وطى شوې وی .بيا به هم نسب ثابت وی .څكه چې د رجعيه معتده سره شرعاً وطى كول حلال دی .خو خاوند به په دې وطى سره مراجعت كونكې نشى شمارلې.څكه كه دا احتمال وی .چه وطى د طلاق نه روسته شوې ده.نودا احتمال هم شته.چه د طلاق نه وړاندې وطى شوې وی .نو په رجعت كې شبه پيدا شوه.اود شك اوشبه په وجه رجعت نه ثابتيږی .په دې وجه به په دې صورت كې رجعت نه ثابتيږی .

**وَإِنْ جَاءَتْ بِهِ لِأَكْثَرَ مِنْ سَنَتَيْنِ** اوكه دې ښځې د دوې [دوه] كالو نه په زيات كې بچې راوړو **كَانَتْ رَجْعَةً** نو دا به رجعت وی **لِأَنَّ الْعُلُوقَ بَعْدَ الطَّلَاقِ، وَالظَّاهِرُ أَنَّهُ مِنْهُ** څكه چې علوق بعد الطلاق دې.اوښكاره ده.چه نطفه هم ددې سړی وی . **لِانْتِفَاءِ الزِّنَا مِنْهَا فَيَصِيرُ بِالْوَطْءِ مُرَاجِعًا** څكه چې د ښځې نه زنا منتفى ده.نودا به په وطى

سره مراجعت کونکې ګرځي.

**تشریح:-** اوکه بچې د طلاق د وخت نه د دوې [دوه] کاله مودې نه زیات کې پیدا شو.نو بلاشبه به رجعت ثابت وی. ځکه چې په دې صورت کې به علوق یقیناً د طلاق نه روسته وی .ځکه چې د حمل اکثره موده دوې [دوه] کاله ده. اوښکاره حال هم دادې.چه دا علوق به هم ددې سړی نه شوې وی .ځکه چې د ښځې دارخه نکاح منتفی ده.نو هرکله چې د عدت په زمانه کې د مطلقه رجعیه سره وطی شوې وی .نودا کس به ددې وطی په وجه مراجعت کونکې شمارلې شی .

**دطلاق بائن یا درې طلاق واقع کیدلونه روسته د دوې [دوه] کاله نه په کمه موده کې ب چې پیدا کیدل**

وَالْمَبْتُوتَةُ يَثْبُتُ نَسَبُ وَلَدِهَا اوکومې ښځې ته چې طلاق بائن ورکړې شو.ددې د بچی نسب به ( دخاوند) نه ثابتیږی. إِذَاجَاءَتْ بِهِ لِأَقَلَّ مِنْ سَنَتَيْنِ چې کله دې د دوې [دوه] کاله نه په کم کې راوړلې وی

**حل اللغة** ① **سنتین**: تثنیه د **سنة**: کال ② **الفرقة**: جدائی ③ **یدعی**: دعوی کوی ④ **حادث**: رستو پیدا شوې

**تشریح:-** مسئله داده.که یوې ښځې ته یوطلاق بائن یا درې طلاقه رجعی ورکړې شو.او بیا د فرقت د وخت نه دوې [دوه] کاله نه کمه موده کې بچې پیداشو.نو ددې بچی نسب به ددې مطلقه بائنه د خاوند نه ثابت وی .

لِأَنَّهُ يَحْتَمِلُ أَنْ يَكُونَ الْوَلَدُ قَائِمًا وَقْتَ الطَّلَاقِ .ځکه چې د طلاق په وخت د بچی موجود کیدلو احتمال دې فَلَايُتَيَقَّنُ بِزَوَالِ الْفِرَاشِ قَبْلَ الْعُلُوقِ نود علوق نه وړاندې د فراش زائل کیدلو یقین نشته فَيَثْبُتُ النَّسَبُ احْتِيَاطًا نو احتیاطاً به نسب ثابت وی

**تشریح:-** دلیل دادې.چه دا احتمال موجود دې.چه د طلاق په وخت د بچی نطفه جوړه شوې وی .نو ددې خبرې یقین نشته.چه د نطفې جوړیدلو نه وړاندې د ښځې فراش صحیح کیدل زائل شوی وو.نو احتیاطاً به نسب ثابت وی .

فَإِنْ جَاءَتْ بِهِ لِتَمَامِ سَنَتَيْنِ مِنْ وَقْتِ الْفُرْقَةِ اوکه دې ښځې د فرقت د وخت نه پوره په دوې [دوه] کاله باندې بچې راوړلو لَمْ يَثْبُتْ نو نسب به نه ثابتیږی لِأَنَّ الْحَمْلَ حَادِثٌ بَعْدَ الطَّلَاقِ ځکه چې حمل د طلاق نه روسته پیدا شوې دې فَلَايَكُونُ مِنْهُ لِأَنَّ وَطْأَهَا حَرَامٌ نو(دا به) ددې سړی نه نه وی .ځکه چې ( دخاوند) دې سره وطی کول حرام دی

**تشریح:-** که د فرقت د وخت نه په پوره دوې [دوه] کاله باندې بچې پیدا شو.نونسب به نه ثابتیږی .ځکه چې په دې صورت کې حمل بالیقین د طلاق نه روسته پیدا شوې دې.ځکه که د طلاق نه مخکې دحمل پیدا کیدل اومنلې شی .نود حمل موده به دوې [دوه] کالو نه زیاته شی .حالانکه دا باطل دې.نو هرکله چې حمل بعد الطلاق پیدا شو.اود سړی مطلقه بائنه سره وطی کول حرام دی .نوثابته شوه.چه دا حمل ددې سړی د نطفې نه نه دې پیدا شوې.اوهرکله چې حمل دده دنطفې نه نه دې.نو دده به نسب هم ثابت نه وی .

إِلَّا أَنْ يَدَّعِيَهُ البته که دا( خاوند) ددې مدعی وی لِأَنَّهُ الْتَزَمَهُ ځکه چې ده ددې ( بچی ) نسب پخپله ذمه پخپله لازم کړو. وَلَهُ وَجْهٌ بِأَنْ وَطِئَهَا بِشُبْهَةٍ فِي الْعِدَّةِ او ددې یوه وجه داهم ده.چه دې سره په عدت کې په شبه کې وطی کړې وی .

**تشریح:-** که دا کس ددې دعوی کوی .چه دا بچې هم زما د نطفې نه پیدا شوې دې.نو دده خخه به نسب ثابت شی .اګرچه بچې د فرقت د وخت نه دوې [دوه] کاله نه زیاته موده کې پیدا شوې وی .دلیل دادې.چه دې سړی ددې بچی نسب پخپله خپله ذمه باندې لازم کړې دې.او ددې یوه شرعی توجیه دا هم کیدلې شی .چه دې سړی د عدت په زمانه کې دحلال په خیال سره دې معتده بائنه سره وطی کړې وی .اوچونکه د نسب په ثبوت کې احتیاط کولې شی .په دې وجه په دې صورت کې هم نسب ثابتیږی .والله أعلم بالصواب



**د نابالغه مطلقه نهه میاشتې روسته ب چې پیداکیدل**

فَإِنْ كَانَتِ الْمَبْتُوتَةُ صَغِيرَةً يُجَامَعُ مِثْلُهَا نوکه مطلقه بائنه داسې صغیره وی .چه دې سره جماع کیدلې شی فَجَاءَتْ بِوَلَدٍ لِتِسْعَةِ أَشْهُرٍ بیا نې ( د طلاق د وخت نه) په نهمه میاشت باندې بچې راوړلو لَمْ يَلْزَمْهُ نود سړی په ذمه به ددې نسب لازم نه وی حَتَّى تَأْتِيَ بِهِ لِأَقَلَّ مِنْ تِسْعَةِ أَشْهُرٍ تردې که د نهه میاشتو نه په کم کې بچې پیدا شو.( نو نسب به ثابت وی عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ رَحِمَهُمَا اللهُ[1] (دا) دامام ابوحنیفه اود امام محمد رحمهما الله په نیز دی

**تشریح:-** مسئله داده.که یوې ښځې ته طلاق بائن یا درې طلاقه ورکړې شو.اودا ښځه داسې نابالغه وی چه دې سره جماع کیدلې شی .او بیا د طلاق د وخت نه په نهمه میاشت باندې ددې بچې پیدا شو.اودې ښځې دعدت تیریدلو هم اقرار اونکړو.نوپه داسې صورت کې به ددې د خاوند په ذمه باندې نسب لازم نه وی .خوکه د نهومیاشتو نه په کم کې بچې پیدا شو.نونسب به ثابت وی .دا تفصیل د طرفینو رحمهما الله په نیز دی.

وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ: يَثْبُتُ النَّسَبُ مِنْهُ إِلَى سَنَتَيْنِ .اواما ابویوسف رحمه الله فرمائی .چه دوې [دوه] کاله پورې به دده نه نسب ثابتیږی . لِأَنَّهَا مُعْتَدَّةٌ يَحْتَمِلُ أَنْ تَكُونَ حَامِلًا وَلَمْ تُقِرَّ بِانْقِضَاءِ الْعِدَّةِ فَأَشْبَهَتِ الْكَبِيرَةَ دابویوسف رحمه الله دلیل دادې.چه په دې معتده کې احتمال دې.چه حامله وی .اودې د عدت تیریدلو اقرار نه وی کړې.نود بالغې ښځې مشابه شوه

**تشریح:-** امام ابویوسف رحمه الله فرمائی .چه د طلاق د وخت نه دوې [دوه] کاله پورې نسب ثابتیږی .د دوی دلیل دادې.چه زموږ کلام په مراهقه مدخول بها کې دې.اومراهقه مدخول بها د حامله کیدلو احتمال لری .اود حامله کیدلو په وخت کې دوې [دوه] احتماله دی .یوداچه دا هم د طلاق په وخت کې حامله وه.نو په دې صورت کې به په وضع حمل سره ددې عدت تیرشی .اونسب به ثابت شی . دوهم احتمال دادې.چه دا درې میاشتې عدت تیریدلو نه روسته حامله شوې وی .نودا به د مراهقه بالغه مشابه وی .ځکه چې دې ددې عدت تیریدلو اقرار نه دی کړې.نود بالغه پشان به دوې [دوه] کاله پورې ددې بچی نسب ثابتیږی.

وَلَهُمَا أَنَّ لِانْقِضَاءِ عِدَّتِهَا جِهَةً مُتَعَيِّنَةً اود طرفینو رحمهما الله دلیل دادې.چه ددې ښځې د عدت تیریدلو یو وخت معین دې وَهُوَ الْأَشْهُرُ اودا د عدت میاشتې دی فَبِمُضِيِّهَا يَحْكُمُ الشَّرْعُ بِالِانْقِضَاءِ نو ددې په تیریدلو باندې شریعت ددې د عدت تیریدلو حکم ورکړې دې وَهُوَ فِي الدَّلَالَةِ فَوْقَ إِقْرَارِهَا اودا ددې ښځې د اقرار نه زیات دې لِأَنَّهُ لَا يَحْتَمِلُ الْخِلَافَ ځکه چې د شریعت حکم د خلاف احتمال نه لری وَالْإِقْرَارُ يَحْتَمِلُهُ او اقرار ددې احتمال لری

**تشریح:-** دطرفینو رحمهما الله دلیل دادې.چه ددې ښځې عدت تیریدلو یومعین وخت ټولو ته معلوم دې.اوهغه د عدت درې میاشتې دی .د الله تعالی ارشاد دې. ( ﴿فَعِدَّتُهُنَّ ثَلَاثَةُ أَشْهُرٍ﴾ ) یعنی کوموښځو ته چې د حیض وینه نه وی راغلې.ددوی عدت درې میاشتې دی .نو ددې درې میاشتو په تیریدلو باندې شریعت ددې د عدت تیریدلوحکم ورکوی .که دا ښځه د عدت تیریدلو اقرار اوکړی .اوکه اونکړی . اود عدت په تیریدلو باندې په دلالت کولوکې د شریعت حکم د ښځې د اقرارنه زیات قوی دې. ځکه چې د شریعت حکم دخلاف احتمال نه لری .اود ښځې اقرار دخلاف او دروغو احتمال لری .نو که ښځې دعدت تیریدلو اقرار کړې وې. او ددې نه شپږ میاشتې روسته بچې پیدا شوې وې.نو نسب به نه ثابتیدلو.دغه ډول هرکله چې شریعت د عدت تیریدلو حکم اوکړو.اوپه شپږ میاشتو باندې بچې پیدا شو.نوهم نسب نه ثابتیږی .نو ثابته شوه.که د

[1]) القول الراجح هو قول الطرفين رحمهما الله كذا فى فتح القدير (١٧٥\٤) وردالمحتار(٦٧٩\٢) والهندية (٥٣٧\١) والبحرالرائق (١٥٩\٤) نقلاً عن القول الراجح (٣٧٥\١)-

مراهقي د طلاق د وخت نه په نهمه مياشت باندې بچې پيدا شو.نو ددې بچي نسب به نه ثابتيږي .

وَإِنْ كَانَتْ مُطَلَّقَةً طَلَاقًا رَجْعِيًّا اوكه دې صغيرې ته طلاق رجعی ورکړې شو فَكَذٰلِكَ الْجَوَابُ عِنْدَهُمَا نود طرفينو رحمهما الله په نيزهم دا حكم دې

تشریح:- که دا صغیره مطلقه رجعیه وی .نود طرفينو رحمهما الله په نيز هم دا حكم دې.یعنی که د طلاق د وخت نه د نهه مياشتو نه په کم کي بچې پيدا شو.نو نسب به ثابت وی .گنی ثابت به نه وی .د امام ابويوسف رحمه الله په نيز اوويشت مياشتو پورې نسب ثابتيږی .

وَعِنْدَهُ يَثْبُتُ إِلَى سَبْعَةٍ وَعِشْرِيْنَ شَهْرًا اود ابويوسف رحمه الله په نيز به اوويشت مياشتو پورې نسب ثابتيږی لِأَنَّهُ يُجْعَلُ وَاطِئًا فِي آخِرِ الْعِدَّةِ خکه چې د عدت په آخر کي به خاوند وطی کونکې شمارلې شی وَهِيَ الثَّلَاثَةُ الْأَشْهُرُ اودا درې مياشتې دی ثُمَّ تَأْتِي لِأَكْثَرِ مُدَّةِ الْحَمْلِ بيا دې ښځې د مدت حمل په اکثره موده کي بچې راوړو وَهُوَ سَنَتَانِ اودا لس كاله دی . وَإِنْ كَانَتِ الصَّغِيْرَةُ ادَّعَتِ الْحَبَلَ فِي الْعِدَّةِ اوكه صغيرې په عدت كې د حامله كيدلو دعوی کړې وی فَالْجَوَابُ فِيْهَا وَفِي الْكَبِيْرَةِ سَوَاءٌ .نو په دې اوكبيره كي برابر دې لِأَنَّ بِإِقْرَارِهَا يُحْكَمُ بِبُلُوْغِهَا خکه چې د صغیرې د حمل په اقرار سره به ددې د بالغه کيدلو حکم ورکولې شی .

تشریح:- د امام ابويوسف رحمه الله دليل دادې.چه د مطلقه رجعيه سره د عدت په زمانه كي وطی کول جائز دی. په دې وجه ممکن ده.چه د عدت په آخری وخت کي ئې وطی کړې وی .او بيا د حمل په اکثره موده کي بچې پيدا شوې وی .نودغه ډول اوويشت مياشتې جوړيږی .درې مياشتې د عدت،او څليريشت مياشتې د حمل اكثره موده.نوكه د طلاق د وخت نه په او ويشتمه مياشت باندې بچې پيدا شو.نو دده نسب به ثابت وی .او كه صغيره د عدت په زمانه کي د خپل خان حامله کيدلو دعوی اوكړه.نوبه دې صورت كي بالغه او نابالغه دواړه په حکم کي برابر دی .خکه چې ددې د حامله کيدلو اقرار په وجه ددې د بالغه کيدلو حکم لگولې شی .خكه چې دا د خپل عدت په حال باندې زياته خبر ده.نود طلاق بائن په صورت کي كه دوې [دوه] كاله نه په كمه موده كي بچې پيدا شو.نو نسب به ثابت وی .اود طلاق رجعی په صورت کي كه د اوويشت مياشتو نه په کم کي بچې پيدا شو.نو نسب به ثابت وی .

### د كندې ښځې په دوې [دوه] كاله كې د پيدا شوی بچي نسب

وَيَثْبُتُ نَسَبُ وَلَدِ الْمُتَوَفّٰى عَنْهَا زَوْجُهَا مَا بَيْنَ الْوَفَاةِ وَبَيْنَ السَّنَتَيْنِ اود ،،متوفی عنها زوجها،، د بچي نسب به د وفات ( د وخت) نه په دوې [دوه] كاله كي دننه ثابتيږی

تشریح:- صورت د مسئلې دادې.چه دکومې ښځې خاوند مړشو.که دا صغيره وی .نو ددې دبچی نسب به ثابت وی .په دې شرط چې د لسومياشتو اود لسو ورځو نه په کم کي پيدا شوې وی .او كه ددې نه په زياته موده كي پيداشو.نود طرفينو رحمهما الله په نيز به نسب نه ثابتيږی .البته د امام ابويوسف رحمه الله په نيز ثابتيږی .اوكه ،،متوفی عنها زوجها،، صغيره وی .نو ددې د بچي نسب به د خاوند د وفات نه دوې [دوه] كاله كي ثابتيږی .

وَقَالَ زُفَرُ رحمه الله إِذَا جَاءَتْ بِهِ بَعْدَ انْقِضَاءِ عِدَّةِ الْوَفَاةِ لِسِتَّةِ أَشْهُرٍ او امام زفر رحمه الله فرمائی .كه د وفات عدت تيريدلو نه روسته په شپږمه مياشت ئې بچې راوړو لَا يَثْبُتُ النَّسَبُ نو نسب به ثابت وی لِأَنَّ الشَّرْعَ حَكَمَ بِانْقِضَاءِ عِدَّتِهَا بِالشُّهُوْرِ خكه چې شريعت ددې عدت په مياشتو سره د تيريدلو حكم وركړې دې. لِتَعَيُّنِ الْجِهَةِ خكه چې ( ددې د عدت) هم دا لاره متعين ده فَصَارَ كَمَا إِذَا أَقَرَّتْ بِالْاِنْقِضَاءِ نوداسې شوه.چه دې د عدت تيريدلو اقرار اوكړو كَمَا بَيَّنَّا فِي الصَّغِيْرَةِ لكه څنگه چې موږ د صغيره په صورت کي بيان کړل

تشریح:- امام زفر رحمه الله فرمائی .كه د وفات د عدت (یعنی څلور مياشتې او لس ورځې) تيريدلو نه په شپږ



مياشتو باندې بچې پيدا شو.نو دده نسب به ثابت وی . د دوی دلیل دادې. چې حمل نه دې ښكاره شوې په دې وجه ددې د عدت موده معلومه ده.(یعنی څلور مياشتې او لس ورځې) نود څلورمياشتو او لس ورځو تيريدلو باندې شريعت ددې د عدت تيريدلو حکم ورکړلو.نودا داسې شوه.لکه چې ښځې پخپله د عدت تيريدلو اقرار کړې وی .اود عدت تيريدلو نه روسته که د شپږ مياشتو نه په کم کي بچې پيدا شو.نو نسب به ثابت وی .خکه چې په دې صورت کي د عدت تيريدلو نه وړاندې د حمل کيدل يقيني دی .او که د شپږ مياشتو نه په زياته موده کي بچې پيدا شو.نو نسب به نه ثابتيږی .خکه په دې صورت کي احتمال دې.چه د عدت تيريدلو نه روسته حامله شوې وی .نود شك په وجه نسب نه ثابتيږی .د صغيرې په حكم كي ددې تفصيل بيان شو.چه لكه څنگه د صغيرې د عدت موده متعين ده.یعنی درې مياشتې.دغه ډول د ،،متوفی عنها زوجها،، د عدت موده هم معلومه ده.یعنی څلور مياشتې او لس ورځې.

إِلَّا أَنَّا نَقُوْلُ لِانْقِضَاءِ عِدَّتِهَا جِهَةٌ أُخْرٰى .خو موږ ددې ځواب ورکوو.چه د ،،متوفی عنها زوجها،، عدت تيريدلو دويمه طريقه هم ده وَهُوَ وَضْعُ الْحَمْلِ او هغه وضع د حمل ده

تشریح:- زموږ د اړخه ځواب دادې.چه د ،،متوفی عنها زوجها،، د عدت تيريدلو (یعنی څلور مياشتې او لس ورځو) نه علاوه يوه بله طريقه هم شته.یعنی وضع د حمل.

بِخِلَافِ الصَّغِيْرَةِ په خلاف د صغيره، لِأَنَّ الْأَصْلَ فِيْهَا عَدَمُ الْحَمْلِ دصغيره په حق کي اصل د حمل نه کيدل دی لِأَنَّهَا لَيْسَتْ بِمَحَلٍّ قَبْلَ الْبُلُوْغِ وَفِيْهِ شَكٌّ خكه چې دا صغيره د بالغه كيدلو نه وړاندې دحمل محل نه دې.او په بالغه كيدوكي شك دې.

تشریح:- ددې په خلاف صغيره ده.چه ددې نه حامله كيدل اصل دی .خكه چې د بالغه كيدلو نه وړاندې دا د حمل محل نشی کیدلې.اود صغيره په بالغه كيدلو کي شك دې.خكه چې صغر خو باليقين ثابت دې.نود شك په وجه صغر نه زائل كيږی .حاصل د ځواب دا دې. چې ،، متوفی عنها زوجها،،په صغيره باندې قياس كول صحيح نه دی .

### د معتده د عدت تيريدلو اقرارنه د شپږ مياشتو نه په كمه موودې [دوه] كې د پيداشوی بچي نسب

وَإِذَا اعْتَرَفَتِ الْمُعْتَدَّةُ بِانْقِضَاءِ عِدَّتِهَا اوهركله چې معتدة دخپل عدت تيريدلو اقرار اوكړو ثُمَّ جَاءَتْ بِالْوَلَدِ لِأَقَلَّ مِنْ سِتَّةِ أَشْهُرٍ بيا دې ( د اقرار د وخت نه) د شپږ مياشتو نه په کم کي بچې راوړو يَثْبُتُ نَسَبُهُ نو ددې بچي نسب به ثابت وی

حل اللغة: ① انقضاء: پوره کیدل ② الحدوث: پیدا کیدل ③ يتناول: شامليږی ]

تشریح:- صورت د مسئلې دادې.چه معتدې او وئيل.زما عدت تيرشو.بيا ددې د اقرار د وخت نه د شپږ مياشتو نه په كمه موده كي بچې پيدا شو.نو ددې بچي نسب به ثابت وی .

لِأَنَّهُ ظَهَرَ كَذِبُهَا بِيَقِيْنٍ خکه چې د معتدة دروغجن كيدل په يقين سره معلوم شو فَبَطَلَ الْإِقْرَارُ په دې وجه ددې اقرار باطل شو وَإِنْ جَاءَتْ بِهِ لِسِتَّةِ أَشْهُرٍ اوكه دې په شپږ مياشتو كي بچې راوړو. لَمْ يَثْبُتْ نو نسب به نه ثابتيږی لِأَنَّا لَمْ نَعْلَمْ بِبُطْلَانِ الْإِقْرَارِ خکه چې د اقرار باطليدو موږ ته علم نشته. لِاحْتِمَالِ الْحُدُوْثِ بَعْدَهُ خكه چې د اقرار نه روسته د حمل پيداكيدلو احتمال دې

تشریح:- دليل دادې.چه هركله د اقرار د وخت نه د شپږ مياشتو نه په كمه موده كي بچې پيداشو.نو معلومه شوه.چه د اقرار په وخت دا معتده حامله وه.اوچونکه د حامله عدت وضع د حمل وی .په دې وجه به دا معتده د عدت تيريدلو په اقراركي دروغژنه وی .نوچه په اقرار كي دروغژنه ده.نو اقرار به باطل وی .او هركله چې دعدت په تيريدلو كي اقرار باطل شو.نود بچي نسب به ثابت وی .او که د اقرار د وخت نه پوره

شپږ میاشتوکي بچي پیدا شو.نو په دې وجه به د اقرار د بطلان یقین نه کیږي .

وَهٰذَا اللَّفْظُ بِإِطْلَاقِهِ يَتَنَاوَلُ كُلَّ مُعْتَدَّةٍ اودا لفظ دخپل اطلاق په وجه هر معتده ته ګډ دي.

تشریح:- علامه مرغیناني فرمائي .چه د ماتن قول﴿اذا اعترفت المعتدة﴾ د خپل اطلاق په وجه هرمعتده ته ګډ دي. که معتده رجعیه وي .او که معتده بائنه وي .یا معتدهٔ وفات،د ټولو حکم هغه دي.کوم چې وړاندې بیان کړې شو.

**د معتده ب چي پیدا کیدل اوددہ نسب**

وَإِذَا وَلَدَتِ الْمُعْتَدَّةُ وَلَدًا اوکله چې یوې معتدې بچې راوړو لَمْ يَثْبُتْ نَسَبُهُ نو ددې نسب به نه ثابتیږي عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله (١) د ابوحنیفه رحمه الله په نیز إِلَّا أَنْ يَشْهَدَ بِوِلَادَتِهَا رَجُلَانِ أَوْ رَجُلٌ وَامْرَأَتَانِ مګر داچه ددې( بچی ) د پیدا کیدو دوې [دوه] سړي یا یوسړې او دوې [دوه] ښځې ګواهي ورکړي إِلَّا أَنْ يَكُونَ هُنَاكَ حَبَلٌ ظَاهِرٌ أَوِ اعْتِرَافٌ مِنْ قِبَلِ الزَّوْجِ خوکه حمل ښکاره وي .یا د خاوند د اړخه اقرار بیاموندې شی فَيَثْبُتُ النَّسَبُ مِنْ غَيْرِ شَهَادَةٍ. نود ګواهۍ نه بغیر به هم نسب ثابتیږي

حل اللغة: ① حبل:امید،په رحم کې بچې ② حجة: دلیل ③ التعين: معین کول]

تشریح:- صورت د مسئلې دادې.که د معتده ښځې بچې پیدا شو.او حمل مخکې نه ښکاره وو.یا خاوند د حمل اقرار کړې وو.نو په دواړه صورتونوکي به بغیر د شهادت نه نسب ثابت وي .او که د معتده ښځې بچې پیدا شو.او خاوند د زیږیدل انکار اوکړلو.نود امام اعظم رحمه الله په نیز به نسب هغه وخت ثابتیږي .چه کله د بچی په زیږیدل باندې دوې [دوه] سړي یا یو سړې او دوې [دوه] ښځې ګواهي ورکړي .

وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ رحمهما الله او صاحبین رحمهما الله فرمائي يَثْبُتُ فِي الْجَمِيعِ بِشَهَادَةِ امْرَأَةٍ وَاحِدَةٍ چې په ټولو صورتونوکي د یوې ښځې په ګواهۍ سره نسب ثابتیږي لِأَنَّ الْفِرَاشَ قَائِمٌ بِقِيَامِ الْعِدَّةِ.د صاحبینو رحمهما الله دلیل دادې. چې دعدت موجود کیدلو په وجه (ښځه د خپل خاوند) فراش دې وَهُوَ مُلْزِمٌ لِلنَّسَبِ او فراش کیدل نسب ثابتوي وَالْحَاجَةُ إِلَى تَعْيِينِ الْوَلَدِ أَنَّهُ مِنْهَا فَيَتَعَيَّنُ بِشَهَادَتِهَا او حاجت د ولد د تعین دې.چه دا بچې هم دې ښځې راوړلې دې.نودا خبره د یوې ښځې په ګواهۍ سره متعین کیږي كَمَا فِي حَالِ قِيَامِ النِّكَاحِ لکه څنګه چې د نکاح قائمیدو په صورت کې ( د یوې ښځې په ګواهۍ سره تعین د ولد)کیږي

تشریح:- صاحبین رحمهما الله فرمائي .چه په ټولوصورتونوکي د یوې آزادې مسلمانې عادلې ښځې په ګواهۍ باندې نسب ثابتیږي .که د مخکې نه حمل ښکاره وي .او که نه.او خاوند دحمل اقرار کړې وي .او که نه.امام احمد رحمه الله هم ددې قائل دې.اود امام شافعي رحمه الله په نیز دڅلورو ښځو ګواهي شرط ده.اود امام مالك اود ابن ابی لیلی رحمهما الله په نیز د دوې [دوه] ښځو په ګواهۍ باندې نسب ثابتیږي .

د دوی دلیل دادې.چه دعدت موجود کیدلو په وجه ښځه دخپل خاوند فراش دې.او فراش کیدل نسب لازم کوي .نود نسب ثابتولو هیڅ اړتیا پاتې نشو.البته دا اړتیا شته.چه دا بچې هم ددې ښځې نه پیدا شوې دې.نودا خبره د یوې ښځې په ګواهۍ سره ثابتیږي .لکه چې د نکاح قائمیدلو په صورت کې بالاتفاق د یوې ښځې په ګواهۍ سره د ولد تعین کیږي .

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله اود امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادې. أَنَّ الْعِدَّةَ تَنْقَضِي بِإِقْرَارِهَا بِوَضْعِ الْحَمْلِ چې د ښځې د وضع حمل داقرار په وجه عدت تیرشو وَالْمُنْقَضِي لَيْسَ بِحُجَّةٍ او تیرشوې شی حجت نشی کیدې. فَمَسَّتِ الْحَاجَةُ إِلَى

(١) القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في الخانية (٢٧٤/٢) وردالمحتار(٦٨٠/٢) والهندية (٥٣٨/١) والبحرالرائق (١٦٠/٤) نقلاً عن القول الراجح (٣٧٦/١)-



إِثْبَاتِ النَّسَبِ ابْتِدَاءً نود نوي سر نه ( دوباره) د نسب ثابتولو اړتیا پیدا شو فَيُشْتَرَطُ كَمَالُ الْحُجَّةِ نو په دې کې پوره ګواهي شرط ده بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ ظَهَرَ الْحَبَلُ په خلاف د هغه صورت چې کله حمل ښکاره وي أَوْ صَدَرَ الْاِعْتِرَافُ مِنَ الزَّوْجِ یاد خاوند د اړخه اقرار صادر شوې وي .( نو هلته کې داشرط نشته) لِأَنَّ النَّسَبَ ثَابِتٌ قَبْلَ الْوِلَادَةِ ځکه چې ( د بچی ) نسب خود پیدا کیدو نه وړاندې ثابت دې وَالتَّعْيِينُ يَثْبُتُ بِشَهَادَتِهَا او تعین د یوې ښځې په ګواهۍ سره ثابتیږي .

تشریح:- د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادې.چه هرکله ښځې د وضع حمل اقرار اوکړلو.نو ددې عدت تیرشو.او کوم شی چې تیر شی .هغه حجت نشی کیدلې.حجت خو هغه وي .چه کوم موجود وي .نو د نوي سر نه د نسب ثابتولو اړتیا پیدا شو.په دې وجه د شهادت تامه کیدل به ضروري وي .او شهادت تامه دادې.چه دوې [دوه] سړي ګواهي ورکړي .یا یو سړې او دوې [دوه] ښځې ګواهي ورکړي .خوکه حمل ښکاره شو.یا خاوند د حمل اقرار اوکړو.نود کامل شهادت شرط نه دې.ځکه چې په دې صورت کې خو نسب د زیږیدل نه وړاندې ثابت شو.او پاتې شوه داچه دا بچې ددې ښځې نه پیدا شوې دې.نودا خبره د یوې ښځې په ګواهۍ سره ثابتیږي .

د حضرت امام صاحب رحمه الله په مذهب باندې دا اشکال کیدلې شی .چه د نسب د اثبات لپاره د سړي شهادت شرط ګرځول،څنګه درست دی .حالانکه د سړي ښځې اړخ ته کتل حرام دی ؟ نوځواب دادې.چه کتل ضروري نه دی .بلکه بغیر د کتلو نه هم ګواهي ورکول ممکن دی .په دې طریقه چې دا ښځه د دوې [دوه] ګواهانو مخکې یې کمرې ته داخل شوه.او ګواهانو ته ددې خبرې عمل دې.چه په دې اطاق (کمره) کې ددې ښځې نه سوا بل څوك نشته.بیا دا ښځه د یوماشوم سره راؤ وتله.نود شهادت ادا کاوه لپاره دومره قدرې هم کافي ده.

**د معتده د اړخه د دوې [دوه] کاله مکمل کیدلو نه وړاندې د بچي د زیږیدل دعوی**

فَإِنْ كَانَتْ مُعْتَدَّةً عَنْ وَفَاةٍ نوکه ښځه ( د خپل خاوند) په وفات سره په عدت کې وي .( اودې د ولادت دعوی اوکړه) فَصَدَّقَهَا الْوَرَثَةُ فِي الْوِلَادَةِ او وارثانو په ولادت کې ددې تصدیق اوکړو وَلَمْ يَشْهَدْ عَلَى الْوِلَادَةِ أَحَدٌ خو په ولادت باندې چې ګواهي ورنکړه فَهُوَ ابْنُهُ فِي قَوْلِهِمْ جَمِيعًا نو بالاتفاق دا ددې د خاوند زوې دې

تشریح:- صورت د مسئلې دادې.که یوه ښځه د خپل خاوند دوفات په وجه په عدت کې وي .بیا دوې [دوه] کاله پوره کیدلو نه وړاندې دې بچی پیدا کیدلو دعوه اوکړله.او ددې ټولو وارثانو( چې دوی د شهادت د جواز لپاره کافي وي .یعنی دوې [دوه] سړي یا یوسړې او دوې [دوه] ښځې) یا بعض وارثانو د بچی پیدا کیدلو اقرار هم اوکړلو.خوهیڅ چا د بچی په پیدا کیدلو باندې ګواهي ورنکړه.نود احناف فقهاء په نیز بالاتفاق دا بچې د میت زوې وي .یعنی ددې بچی به د میت نه نسب ثابت وي .

وَهٰذَا فِي حَقِّ الْإِرْثِ ظَاهِرٌ اودا ( ثبوت بنوت) د وراثت په حق کې ښکاره دې. لِأَنَّهُ خَالِصُ حَقِّهِمْ ځکه میراث دده خالص حق دې فَيُقْبَلُ فِيهِ تَصْدِيقُهُمْ نو د میراث په حق کې په ددوی تصدیق کول قبلولوی .

تشریح:- علامه مرغیناني رحمه الله فرمائي .چه د خوی کیدلو ثبوت د میراث په حق کې ښکاره دې.یعنی دا ماشوم به په میراث کې د نورو وارثانو سره په وراثت کې شریك وي .ځکه چې میراث خالص د وارثانو حق وي .نو پخپل حق کې به ددوی اقرار کول قبول وي .

أَمَّا فِي حَقِّ النَّسَبِ هَلْ يَثْبُتُ فِي حَقِّ غَيْرِهِمْ پاتې شو د نسب په حق کې .آیا ددوی نه د علاوه په حق کې به نسب ثابتیږي . قَالُوا إِذَا كَانُوا مِنْ أَهْلِ الشَّهَادَةِ يَثْبُتُ نو مشائخ فرمائي .که تصدیق کونکي وارثان د اهل شهادت څښې وي .نو( نسب) به ثابتیږي لِقِيَامِ الْحُجَّةِ ځکه چې حجت (شرعیه) ثابت شو

**تشریح:-** پاتې شوه دا خبره چې د عامو خلګو په حق کې به ددې بچې نسب د میت نه ثابت وی. او که نه. نو په دې اړه کې د مشائخو ﷭ قول دادې. که تصدیق، او اقرار کونکی وارثان د شهادت اهل وی. په دې طریقه چې واړه سړی وی. یا سړی او ښځې دواړه وی. او دوی عادلان هم وی. نود ټولو خلګو په حق کې به د دې بچې نسب ثابت وی. ځکه چې شرعی حجت یعنی کامل شهادت موجود شو. تردې چې دا بچې به په اقرار کونکو او انکار کونکو دواړو سره په میراث کې شریك وی. اود نورو وراثانو پشان به دې بچې ته هم د مړی د مدیون نه د دین د مطالبه حق حاصل وی.

**وَلِهٰذَا قِيلَ: تُشْتَرَطُ لَفْظَةُ الشَّهَادَةِ** په دې وجه اوونیلې شو. چه لفظ د شهادت شرط دې **وَقِيلَ لَا تُشْتَرَطُ** او اوونیلې شو. چه شرط نه دې **لِأَنَّ الثُّبُوتَ فِي حَقِّ غَيْرِهِمْ تَبَعٌ لِلثُّبُوتِ** ځکه چې د تصدیق کونکو نه د علاوه په حق کې نسب ثابتیدل تابع دی **فِي حَقِّهِمْ بِإِقْرَارِهِمْ** د دوی د اقرار په وجه ددوی د حق په ثابتولو کې **وَمَا ثَبَتَ تَبَعًا لَا يُرَاعَى فِيهِ الشَّرَائِطُ** او کوم شی چې تابع ثابتیږی. په هغې کې د شرائطو رعایت (ضروری) نه وی.

**تشریح:-** چونکه د تصدیق کونکو وارثانو د شهادت د اهل ځنې کیدل شرط دی. په دې وجه بعض مشائخ وائی. چې د شهادت لفظ شرط دې. او بعض مشائخ وائی. چه د شهادت لفظ شرط نه دې. د قول ثانی دلیل دادې. چه د ورثه د اقرار او تصدیق په وجه به په اصل کې خو نصب ددوی په حق کې ثابت شی. او د دوی نه د علاوه په حق کې به ددوی تابع وی. اونسب به ثابت وی. او قاعده ده. چه کوم شی په تابع کیدلو کې ثابتیږی. په هغې کې د شرائطو لحاظ ساتل ضروری نه وی.

﴿مثلاً مولی په سفر کې یوځائې کې د اقامت نیت اوکړلو. نود اقامت شرائط به د مولا په حق کې معتبر وی. د غلام او خادمانو په حق کې به معتبر نه وی. ځکه چې دا خلګ د مولا تابع وی.

## د نکاح نه شپږ میاشتې نه په کمه موده کې د پیدا شوی بچې نسب

**وَإِذَا تَزَوَّجَ الرَّجُلُ امْرَأَةً** اوکه سړی یوې ښځې سره نکاح اوکړله **فَجَاءَتْ بِوَلَدٍ لِأَقَلَّ مِنْ سِتَّةِ أَشْهُرٍ مُنْذُ يَوْمِ تَزَوَّجَهَا** نود نکاح د ورځ نه د شپږ میاشت نه په کم کې دې بچې راوړو **لَمْ يَثْبُتْ نَسَبُهُ** نو ددې (بچې) نسب به ثابت نه وی

**حل اللغة:** ① **العلوق:** په رحم کې د نطفې استقرارنیول ② **فصاعدا:** زیاتی ③ **المدة:** موده، وخت ④ **القذف:** په چا باندې د زنا الزام لګول اوبیا د هغې نه ثابتول]

**تشریح:-** صورت د مسئلې دادې. که یو سړی د یوې ښځې سره نکاح اوکړله. نود نکاح د وخت نه د شپږ میاشتو نه په کمه موده کې ددې ښځې بچې پیدا شو. نو ددې بچې نسب به ددې سړی نه ثابت نه وی.

**لِأَنَّ الْعُلُوقَ سَابِقٌ عَلَى النِّكَاحِ** ځکه چې نطفه په نکاح باندې مقدم ده **فَلَا يَكُونُ مِنْهُ** نو (دا) نطفه به ددې سړی نه نه وی

**تشریح:-** دلیل دادې. چه د حمل کم ازکم موده شپږ میاشتې ده. او بچې د شپږ میاشتو نه په کمه موده کې پیدا شو. نو معلومه شوه. چه نطفه د نکاح نه وړاندې پیدا شوې وه. نو ثابته شوه. چه دا نطفه ددې خاوند نه نه ده. او هرکله چې نطفه ددې سړی نه نه ده. نو په دې سره به نسب هم نه ثابتیږی. او که د نکاح د وخت نه د شپږ میاشتو نه په زیاته موده کې بچې پیدا شو. نو ددې بچې نسب به دده نه ثابت وی. که خاوند ددې بچې اقرار اوکړی. او که خاموش پاتې شی. ځکه چې د ښځې فراش کیدل ثابت دی. اود حمل موده هم پوره ده.

**وَإِنْ جَاءَتْ بِهِ لِسِتَّةِ أَشْهُرٍ فَصَاعِدًا** اوکه (د نکاح دوخت نه) په شپږو میاشتو باندې یا (ددې نه) په زیاتو باندې بچې راوړو **يَثْبُتُ نَسَبُهُ مِنْهُ** نود خاوند به ددې نسب ثابت وی **اعْتَرَفَ بِهِ الزَّوْجُ أَوْ سَكَتَ** که خاوند ددې اقرار اوکړی. اوکه خاموش پاتې شی **لِأَنَّ الْفِرَاشَ قَائِمٌ وَالْمُدَّةَ تَامَّةٌ** ځکه چې فراش قائم دې. او موده هم پوره ده **فَإِنْ جَحَدَ الْوِلَادَةَ** بیا که خاوند د ولادت انکار اوکړو **يَثْبُتُ بِشَهَادَةِ امْرَأَةٍ وَاحِدَةٍ تَشْهَدُ بِالْوِلَادَةِ** نو (ولادت به) ثابتیږی. د یوې



ښځې په ګواهۍ سره کومه چې د ولادت شاهده وی **حَتَّى لَوْ نَفَاهُ الزَّوْجُ يُلَاعِنُ** تردې که خاوند د بچې نفی اوکړی. نو لعان به کوی **لِأَنَّ النَّسَبَ يَثْبُتُ بِالْفِرَاشِ الْقَائِمِ** ځکه چې نسب ثابتیږی. د فراش په موجود کیدو سره.

**تشریح:-** که بچې په شپږ میاشتو یا ددې نه په زیاته موده کې پیدا شو. خو خاوند د بچې پیدا کیدلو انکار اوکړلو. نو که یوه ښځه د بچې پیدا کیدلو ګواهی ورکړی. نو ددې په شهادت سره به زیږیدل ثابت شی. تردې که خاوند ددې بچې نفی اوکړله. او وې وئیل. چه دا بچې زما د نطفې نه نه دې پیدا. نو خاوند به خپلې ښځې سره لعان کوی.

﴿دلیل دادې. چه د ښځې د فراش کیدلو په وجه د بچې نسب ثابت شو. او پاتې شو د زیږیدل انکار، نو دا دیوې ښځې په ګواهۍ سره ثابت شو.

**وَاللِّعَانُ إِنَّمَا يَجِبُ بِالْقَذْفِ** او لعان واجبیږی. د زنا په تهمت لګولو سره **وَلَيْسَ مِنْ ضَرُورَتِهِ وُجُودُ الْوَلَدِ** اود لعان لپاره د بچې موجود کیدل ضروری نه دی **فَإِنَّهُ يَصِحُّ بِدُونِهِ** ځکه چې لعان د بچې نه بغیر هم کیږی.

**تشریح:-** په دې عبارت سره د اعتراض ځواب کوی. اعتراض دادې. چه دلته کې د بچې په نفی کاوه باندې لعان واجب شوې دې. اود بچې زیږیدل د یوې ښځې (دینړه) په شهادت سره ثابتیږی. نو نتیجه دا راؤوتله چه لعان د یوې ښځې (دینړې) په شهادت سره ثابت شو. حالانکه دا جائز نه ده. ځکه چې لعان معنی حد دې. او حد د ښځو په شهادت سره نه ثابتیږی.

﴿ددې ځواب دادې. چه لعان واجبیږی. د زنا په تهمت لګولو سره. او دلته کې د زنا تهمت موجود دې. ځکه چې د خاوند قول «لیس منی» په ښځه باندې د زنا تهمت لګول دی. او تهمت لګول د بچې وجود ته مستلزم نه دی. ځکه چې بغیر د بچې نه هم قذف (تهمت لګول) ثابتیږی. نو په قذف کې ددې اعتبار نه دې شوې. چه دیوې ښځې (دینړې) په ګواهۍ سره ثابت شوې وی. والله اعلم.

## د بچې په زیږیدل سره په زوجینوکې د نکاح په موده کې اختلاف

**فَإِنْ وَلَدَتْ** نوکه د ښځې نه بچې پیدا شو **ثُمَّ اخْتَلَفَا** بیا (ښځې خاوند) اختلاف اوکړو **فَقَالَ الزَّوْجُ تَزَوَّجْتُكِ مُنْذُ أَرْبَعَةِ** نو خاوند اووئیل. چه ته ماد څلور میاشتو داسې په نکاح کې اخستې ئې **وَقَالَتْ هِيَ مُنْذُ سِتَّةِ أَشْهُرٍ** او ښځې اووئیل. چه د شپږ میاشتو نه **فَالْقَوْلُ قَوْلُهَا** نو قول به د ښځې (قبول) وی **وَهُوَ ابْنُهُ** اودا بچې به ددې د خاوند زوې وی

**حل اللغة:** ① **سفاح:** زنا ② **استحلاف:** قسم ورکول ]

**تشریح:** مسئله داده. چه د یوې ښځې ماشوم پیدا شو. بیا زوجینو اختلاف اوکړلو. خاوند وائی. چه ته ما صرف دڅلورو میاشتو نه په نکاح اخستې وې. او ښځه وائی. چه داسې نه ده. بلکه پوره شپږ میاشتې اوشوې. چه زه ستا په نکاح کې یم. نو په دې صورت کې به د ښځې قول معتبر وی. اودا بچې به ددې خاوند زوې شمارلې کیږی. یعنی دده څخه به ددې بچې نسب ثابت وی.

**لِأَنَّ الظَّاهِرَ شَاهِدٌ لَهَا** ځکه چې ښکاره (حال) ددې ښځې شاهد دې **فَإِنَّهَا تَلِدُ ظَاهِرًا مِنْ نِكَاحٍ** ځکه چې دې به د نکاح نه بچې راوړلې وی **لَا مِنْ سِفَاحٍ** نه د زنا نه

**تشریح:** دلیل دادې. چه ښکاره حال د ښځې موافق دې. ځکه چې ښکاره هم دا ده. چه د مسلمانې ښځې نه د بچې زیږیدل د نکاح په وجه شوې دې. د زنا په وجه نه دې شوې. او ښکاره حال چې د کوم کس موافق وی. هغه مدعی علیه وی. نو په دې مسئله کې ښځه (بی بی) مدعی علیه ده. او ددې خاوند مدعی دې. اود حدیث «البینة علی المدعی.» په رو سره که د مدعی سره بینه نه وی. نود مدعی علیه قول به معتبر وی. او

چونکه دلته کې مسئله مفروضه هم داسې ده.چه خاوند سره بينه نشته.په دې وجه ښځه چې مدعى عليه ده.ددې قول به معتبر وى .

| |
|---|
| **وَلَمْ يَذْكُرِ الْاِسْتِحْلَافَ** او امام محمد رحمه الله قسم اخستل نه دى ذکر کړى .**وَهُوَ عَلَى الْاِخْتِلَافِ** حالانکه دا مختلف فيه دى . |

**تشريح**:صاحب دعنايه رحمه الله په دې موقع دوې [دوه] اعتراضه سره د ځوابه ذکر کړى دى .خادم هم دا ذکر کوى ①رومبې اعتراض دادې. دادې.چه ښکاره حال د خاوند د قول شاهد دې.ځکه چې نکاح امر حادث دې.او په حوادثو کې اصل دادې.چه دا اقرب وختونو اړخ ته منسوب کړې شى .اود اقرب وختونو قائل خاوند دې.دده ښځه نه ده.نو خاوند مدعى عليه شو.اوچونکه د مدعى عليه قول معتبر وى .په دې وجه د خاوند قول معتبر کيدل پکار دى ؟ ددې ځواب دادې.چه د نسب په ثبوت کې احتياط کولې شى .نو هرکله چې دوې [دوه] ظاهر متعارض شى .نو مثبت ته به په نافى باندې ترجيح ورکولې شى .او چونکه د ښځې قول مثبت للنسب دې.او د خاوند قول نافى للنسب دې.په دې وجه به دښځې قول راجح وى .② دوهم اعتراض چې ښځه علوق (نطفه)، د خاوند خودلې شوې زمانې(يعنى ځلور مياشتې) نه وړاندې اړخ ته منسوب کوى .او خاوند ددې منکر دې.اود بينه نه کيدلو په صورت کې د منکر قول معتبر وى .نود خاوند قول معتبر کيدل پکار دى ؟ ددې ځواب دادې.چه دا معارض دې.په دې طريقه چې خاوند علوق د نکاح نه وړاندې زمانې اړخ ته د منسوب کاوه مدعى دې.او ښځه ددې منکره ده.نود ښځې قول معتبر کيدل پکار دى .

صاحب دهدايه رحمه الله فرمائى .چه امام محمد رحمه الله په جامع صغير کې دا نه دى ذکر کړى .چه د ښځې ځخه به قسم اخستلې شى .او که نه.حالانکه داخبر مختلف فيه ده.د صاحبينو رحمهما الله په نيز به قسم اخستلې شى .اود امام صاحب رحمه الله په نيز به نشى ا خستلې.والله اعلم

## د ښځې په ګواهئ باندې د زيږيدل ثبوت

| |
|---|
| **وَاِنْ قَالَ لِاِمْرَأَتِهِ** اوکله چې يوکس خپلې ښځې ته اووئيل **اِذَاوَلَدْتِ وَلَدًافَاَنْتِ طَالِقٌ** کله چې تا بچې راوړو.نو ته دې طالقه ئې **فَشَهِدَتْ اِمْرَأَةٌ عَلَى الْوِلَادَةِ** بيا يوې ښځې په بچى راوړلو باندې ګواهى ورکړه **لَمْ تَطْلُقْ عِنْدَاَبِى حَنِيْفَةَ** رحمه الله (١) نود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به طلاق نه واقع کيږى |

**حل اللغة**: ① **الحجة**: دليل ② **ينفك**: جلا کيږى ③ **الحنث**:حانث کيدل]

**تشريح**:-صورت د مسئلې دادې.چه يو سړى خپلې ښځې ته اووئيل.﴿إذا ولدت ولداً فانت طالق﴾ نو يوې ښځې (ديئرې) د بچى پيدا کيدلو شهادت اوکړو.او خاوند د زيږيدل منکردې.په داسې حال کې چې نه خود ښځې حمل ښکاره وو.او نه خاوند د حامله کيدلو اقرار کړې وو.نود امام اعظم ابوحنيفه رحمه الله په نيز به په دې ښځه باندې طلاق نه واقع کيږى .البته نسب به ثابت وى .

| |
|---|
| **وَقَالَ اَبُوْيُوْسُفَ وَمُحَمَّدٌ** رحمهما الله **تَطْلُقُ** او صاحبين رحمهما الله فرمائى .چه طلاق واقع کيږى **لِاَنَّ شَهَادَتَهَا حُجَّةٌ فِى ذٰلِكَ** ځکه چې په دې باب کې د يوې ښځې شهادت حجت دې **قَالَ عَلَيْهِ الصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ** نبى کريم ﷺ فرمائيلى دى {**شَهَادَةُ النِّسَاءِ جَائِزَةٌ فِيْمَا لَا يَسْتَطِيْعُ الرِّجَالُ النَّظَرَ اِلَيْهِ**}(٢).چه د ښځې ګواهى په داسې امر کې جائز ده.په کوم کې چې د سړو د نظر کاوه قدرت نه وى |

(١) القول الراجح هو قول أبى حنيفة رحمه الله كذا فى فتح القدير(١٨٠\٤) والعناية (١٧٤\٤) والهندية (٤٢٤\١) ومراقى الفلاح (ص،٢٦٧) نقلاً عن القول الراجح (٣٧٧\١)-



**تشريح**:-صاحبين رحمهما الله فرمائى .چه طلاق واقع کيږى .د دوى دليل دادې.چه ديوې ښځې په ګواهئ سره زيږيدل ثابتيږى .نبى کريم ﷺ فرمائيلى دى .د ښځو ګواهى په داسې امر باندې جائز ده.چه هغه اړخ ته سړو لپاره کتل شرعاً ممنوع وى .نو هرکله چې د يوې ښځې په ګواهئ سره زيږيدل ثابت شو.نو طلاق به هم واقع کيږى .ځکه چې طلاق په ولادت باندې معلق شوې دې.ددې حديث د غريب کيدلو په وجه اکثر شارحينو دا نه دې ذکر کړې. [؟]

| |
|---|
| **وَلِاَنَّهَا لَمَّا قُبِلَتْ فِى الْوِلَادَةِ** او ځکه چې کله د يوې شهادت په ولادت ثابتولو کې قبول دې **تُقْبَلُ فِيْمَا يَبْتَنِى عَلَيْهَا وَهُوَ الطَّلَاقُ**.نوکوم شى چې په ولادت باندې مبنى دې.په هغې کې به هم قبلولې شى .او هغه طلاق دې |

**تشريح**:- دوهم دليل دادې.چه هرکله د يوې ښځې (ديئرې) شهادت د زيږيدل په ثبوت کې حجت دې.نو طلاق کوم چې په زيږيدل باندې معلق اومبنى دې.ددې په ثابتولو کې به هم يقيناً حجت وى .

| |
|---|
| **وَلِاَبِى حَنِيْفَةَ** رحمه الله **اَنَّهَا اِدَّعَتِ الْحِنْثَ فَلَا يَثْبُتُ** اود امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې.چه ښځې د حانث کيدلو دعوى اوکړه.نو حنث به نه ثابتيږى **اِلَّا بِحُجَّةٍ تَامَّةٍ** مګر په حجت تامه سره **وَهٰذَا لِاَنَّ شَهَادَتَهُنَّ ضَرُوْرِيَّةٌ فِى حَقِّ الْوِلَادَةِ** اودا په دې وجه چې د ولادت په اړه کې دښځو شهادت جائز کيدلو د اړتيا په وجه دى **فَلَا تَظْهَرُ فِى حَقِّ الطَّلَاقِ** نود طلاق په اړه کې ( به ددې اثر) نه ښکاره کيږى **لِاَنَّهُ يَنْفَكُّ عَنْهَا** ځکه چې طلاق د ولادت نه جلا هم کيداې شى. |

**تشريح**:- اود امام اعظم رحمه الله دليل دادې.چه ښځې (بى بى ) په خپل خاوند باندې د حانث کيدلو دعوى کړې ده.يعنى دطلاق واقع کيدلو،او خاوند ددې منکر دې.نود ښځې دا دعوى بغير دکامل حجت نه نه ثابتيږى اوپاتې شوه داخبره چې طلاق په زيږيدل باندې موقوف دې.او زيږيدل د يوې ښځې په شهادت سره ثابتيږى نو طلاق کوم چې موقوف دې.ددې ثبوت به هم د يوې ښځې په ګواهئ سره کيږې .نو ددې ځواب دادې.چه د زيږيدل په حق کې د ښځو شهادت ضرورةً معتبر دې.او کوم شى چې ضرورةً ثابت وى .هغه د اړتيا په اندازه ثابتيږى . يعنى د اړتيا د حدنه تجاوز نه کوى .نود يوې ښځې په شهادت سره به زيږيدل ثابت شي ځکه چې د زيږيدل په وخت سړى موجود نه وى .په دې وجه د زيږيدل په حق کې د ښځو شهادت ضرورةً معتبر ګرځولې شوې دې.خود طلاق په حق کې د يوې ښځې د ګواهئ اثر نه ښکاره کيږى .ځکه چې په طلاق او زيږيدل کې هيڅ لزوم نشته.ځکه چې طلاق بغير د پيدائشه،او زيږيدل بغير د طلاقه موجود کيږى .[؟]

## د حمل پيدا کيدلو نه روسته د بچى په پيدا ئش باندې طلاق معلق کول

| |
|---|
| **وَاِنْ كَانَ الزَّوْجُ قَدْ اَقَرَّ بِالْحَبَلِ** اوکه خاوند ددې ښځې د حامله کيدو اقرار اوکړو **طَلُقَتْ مِنْ غَيْرِ شَهَادَةٍ عِنْدَ اَبِى حَنِيْفَةَ** رحمه الله (١) نود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به د ګواهئ نه بغير مطلقه شى |

**حل اللغة**: ① هغه دائنده چې د ولادت په وخت کې ښځې سره موجود وى اود ولادت په کار کې کومک کوى ② **الحبل**: اميد ،په رحم کې بچې ③ **موتمنة**: امانتداره ګرځولې شوې]

**تشريح**:- مسئله داده.که خاوند د خپلې ښځې د حامله کيدلو اقرار اوکړلو.بياده ددې طلاق د بچى په زيږيدل

(٢) قال الزيلعى قلت غريب وروى ابن ابى شيبة فى مصنفه فى البيوع قال مضت السنة ان تجوز شهادة النساء فيما لا يطلع عليه غيرهن من ولادات النساء وعيوبهن ويجوز بشهادة القابلة فى الإستهلال وإمرأتان فيما سوى ذلك وروا عبدالرزاق فى مصنفه عن جريج عن الزهرى)-

(١) القول الراجح هو قول أبى حنيفة رحمه الله كذا فى فتح القدير(١٨٠\٤) والكفاية (١٨٠\٤) ورد المحتار(٦٨٣\٢) والبحر الرائق (١٦٣\٤) نقلاً عن القول الراجح (٣٧٨\١)-

باندې معلق کړلو.نو ښځې دعوی اوکړله.چه بچې پیداشوې دې.او خاوند ددې تکذیب اوکړلو.نو په دې صورت کې به د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز بغیر د شهادته دا ښځه مطلقه شي.

وَعِنْدَهُمَا تُشْتَرَطُ شَهَادَةُ الْقَابِلَةِ اود صاحبینو رحمهما الله په نیز د دینړې ګواهي شرط ده. لِأَنَّهُ لَابُدَّ مِنْ حُجَّةٍ لِدَعْوَاهَا الْحِنْثَ ځکه چې د ښځې د حنث دعوې لپاره حجت کیدل ضروري دي ، وَشَهَادَتُهَا حُجَّةٌ فِيهِ اود یوې ښځې (دینړې) شهادت په دې باب کې حجت دی عَلَى مَا بَيَّنَّا لکه څنګه چې موږ وړاندې بیان کړې دی

تشریح:- د صاحبینو په نیز د طلاق واقع کیدلو لپاره د دینړې شهادت شرط دی.د دوی دلیل دادی.چه ښځې ددې خبرې دعوه اوکړله.چه زما خاوند په خپل قسم «اذا ولدت ولداً فانت طالق» کې حانث شو.اود خاوند حانث کیدل ثابتولو لپاره د یوې ښځې ( وینځې) شهادت کافي دی.لکه چې په وړاندې مسئله کې تیرشو.په دې وه موږ اوونیل.چه د یوې ښځې (دینړې) شهادت شرط دی.

وَلَهُ اود امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادی أَنَّ الْإِقْرَارَ بِالْحَبَلِ إِقْرَارٌ چې دحامله کیدلو اقرار د هغه شي اقرار دی بِمَا يُفْضِي إِلَيْهِ کوم اړخ ته به چې دا رسیږي وَهُوَ الْوِلَادَةُ او هغه ولادت دی

تشریح:- د حضرت امام صاحب رحمه الله دلیل دادی.چه د خاوند د اړخه د خپلې ښځې د حامله کیدلو اقرار په حقیقت کې د حمل په نتیجه، یعنی د زیږیدل اقرار کول دی .او هرکله چې د خاوند داړخه په زیږیدل باندې اقرار موجود شو.نود شهادت اړتیا پاتې نشو.په دې وجه اوونیلی شو.چه د شهادت نه بغیر به زیږیدل ثابت شي .او طلاق به واقع شي .

وَلِأَنَّهُ أَقَرَّ بِكَوْنِهَا مُؤْتَمَنَةً اوځکه چې خاود د ښځې د امانت دارکیدو اقرار کړې دی فَيُقْبَلُ قَوْلُهَا فِي رَدِّ الْأَمَانَةِ نوپه امانت واپس کولوکې به دده قبول وی

تشریح:- دوهم دلیل دادی.چه هرکله خاوند ددې خبرې اقرار اوکړلو.چه زما ښځه حامله ده.نو ګویا چې ده ددې خبرې اقرار اوکړلو.چه دا امانت داره ده. یعنی ددې په نس کې زما بچې ودیعت (امانت) دی.او په امانت واپس کولوکې د امین قول معتبر وی .په دې وجه به دلته کې هم د امانت په واپس کولو،یعنی د بچې په زیږیدل کې د امین (یعنی د ښځې) قول معتبر وی .اود شهادت وغیره اړتیا به نه وی .

**د حمل کم نه کم اود زیات نه زیاته موده**

قَالَ امام قدوری رحمه الله فرمائي وَأَكْثَرُ مُدَّةِ الْحَمْلِ سَنَتَانِ چې دحمل اکثره موده دوې [دوه] کاله ده لِقَوْلِ عَائِشَةَ رضي الله عنها دلیل د حضرت عائشه رضي الله عنها قول دی الْوَلَدُ لَا يَبْقَى فِي الْبَطْنِ أَكْثَرَ مِنْ سَنَتَيْنِ چې بچې په نس کې دوې [دوه] کالو نه زیات نه پاتې کیږي . وَلَوْ بِظِلِّ مِغْزَلٍ[1] د میچن د لاسکي د سوري برابر وی

حل اللغة: ① البطن: نس ② مغزل: د میچن د لاسکي سوري ③ فصال: د تې نه کټ کیدل ④ یهتدی: لار ښائي

تشریح:- زموږ په نیز د حمل زیات نه زیاته موده دوې [دوه] کاله ده. دلیل دادی.چه د حضرت عائشه رضي الله عنها قول دی.فرمائي .چه بچې د مور په نس کې دوې [دوه] کاله نه زیات نه پاتې کیږي .اګرچه د میچن د لاسکي د سوري په اندازه وی .او ښکاره هم داده.چه حضرت عائشه رضي الله عنها دا د نبی کریم ﷺ نه اوریدلی وی .او بیان کړې ئې وی .

وَأَقَلُّهُ سِتَّةُ أَشْهُرٍ اود حمل کم ازکم موده شپږ میاشتې ده. لِقَوْلِهِ تَعَالَى ځکه چې الله تعالی فرمائیلی دی وَحَمْلُهُ وَفِصَالُهُ ثَلَاثُونَ شَهْرًا)) (وَفِصَالُهُ فِي عَامَيْنِ دبچی په حمل کې پاتې کیدل او(د) شیدې پرېښولو ( موده) دیرش میاشتې دی ثُمَّ قَالَ بیا فرمائي . ( وَفِصَالُهُ فِي عَامَيْنِ ) اود بچې شیدې پرېښول دوې [دوه] کاله کې

(۱) أخرجه الدارقطني في سننه (۳۲۲۳) رقم ۰۸۲ والبيهقي في السنن الكبرى (۷۸۲۷) رقم (۲۵۵۵۱)-



کیږي فَيَبْقَى لِلْحَبَلِ سِتَّةُ أَشْهُرٍ نود حمل لپاره شپږ میاشتې پاتې شوې

تشریح:- اود حمل کم نه کمه موده بالاتفاق شپږ میاشتې ده.دلیل د قرآن آیت ((وَحَمْلُهُ وَفِصَالُهُ ثَلٰثُوْنَ شَهْرًا)) دی.یعنی په حمل کې د پاتې کیدلو اود پیو پرېښولو موده دیرش میاشتې ده.بیا الله تعالی فرمائي ((وَفِصَالُهُ فِي عَامَيْنِ)) یعنی د بچی شیدې پرېښول په دوې [دوه] کاله کې کیږي .نود حمل موده شپږ میاشتې پاتې شوه.

د علامه مرغیناني رحمه الله په کلام کې تناقض دی.په دې طریقه چې په کتاب الرضاع کې د امام صاحب رحمه الله دلیل بیانولوکې بیان شوی وو.چه په حمل او فصال دواړو کې د هریو موده دیرش میاشتې ده.خود حمل په موده کې منقص موجود دی.یعنی د عائشه رضي الله عنها حدیث چه «الولد لا يبقى في البطن أكثر من سنتين» یعنی هلته کې ئې دا موده په دواړو باندې نه وه تقسیم کړې.بلکه په دواړو کې د هریو موده دیرش میاشتې مقرر کړې شوې وې.اود عائشه رضي الله عنها په حدیث سره د حمل په موده کې کمې کړې شوې وو.او دلته کې ئې چې هم هغه آیت پیش کړلو.نو په حمل اوفصال دواړو ئې دا موده ویش کړله.په دې طریقه چې څلیریشت میاشتې ئې د فصال موده مقرر کړې ده.دآیت ((وَفِصٰلُهُ فِي عَامَيْنِ)) په وجه.او پاته شپږ میاشتې ئې د حمل اقله موده ګرځولې ده.

په اصل کې د حمل اقله موده بیانولوکې علامه مرغیناني رحمه الله چې کومه طریقه اختیار کړې ده.دا دابن عباس رضي الله عنهما تاویل دی.لکه چې نقل دی .چه «ان رجلا تزوج إمرأة فولدت لستة أشهر فهم عثمان برجمها فقال ابن عباس رضي الله عنهما أم انها لو خاصمتكم بكتاب الله تعالى لخصمتكم قال الله تعالى((وَحَمْلُهُ وَفِصٰلُهُ ثَلٰثُوْنَ شَهْرًا)) وقال((وَفِصٰلُهُ فِي عَامَيْنِ)) فلم يبق للحمل إلا سنة أشهر فدرأ عثمان الحد عنها» (فتح القدیر) یو سړي دیوې ښځې سره نکاح اوکړله.په شپږمه میاشت ددې ښځې بچې پیدا شو.نو حضرت عثمان رضي الله عنه دده د سنګسار کاوه اراده اوکړله.نو ابن عباس رضي الله عنهما اوفرمائیل.که دا ښځه تاسو سره د کتاب الله په ذریعه جګړه کوی .نو زه هم تاسو سره جګړه کوم.الله تعالی فرمائي . ((وَحَمْلُهُ وَفِصٰلُهُ ثَلٰثُوْنَ شَهْرًا)) او فرمائي . ((وَحَمْلُهُ وَفِصٰلُهُ ثَلٰثُوْنَ شَهْرًا)) نو حمل موده صرف شپږ میاشتې پاتې شوه.حضرت عثمان رضي الله عنه (چه دا واوریدل) نو ددې ښځې نه ئې حدلرې کړلو.نود حضرت عثمان رضي الله عنه حد دفع کول،اود هیڅ یوصحابي مخالفت نه کول،د اجماع دلیل دی.بهرحال که د ابن عباس رضي الله عنهما د تاویل مطابق استدلال اوکړې شي .لکه څنګه چې دلته کې شوې دی.نو په ،،کتاب الرضاع،، چې کومه طریقه اختیارشوې ده.هغه به باطل شي .حاصل داچه په مصنف رحمه الله باندې د تناقض اشکال ختم نشو.

وَالشَّافِعِيُّ رحمه الله يُقَدِّرُ الْأَكْثَرَ بِأَرْبَعِ سِنِينَ او امام شافعی رحمه الله د حمل د اکثرې مودې اندازه څلور میاشتې لګولې ده وَالْحُجَّةُ عَلَيْهِ اود امام شافعی رحمه الله خلاف هغه حدیث حجت دی مَا رَوَيْنَاهُ کوم چې موږ روایت کړې دی وَالظَّاهِرُ او ښکاره هم داده أَنَّهَا قَالَتْهُ سَمَاعًا چې حضرت عائشه رضي الله عنها به دا د( نبی کریم ﷺ ) نه اوریدلی وی او بیان کړې به ئې وی إِذِ الْعَقْلُ لَا يَهْتَدِي إِلَيْهِ ځکه چې عقل ته داسې اندازې لګولو هیڅ لار نشته.

تشریح:- د امام شافعی او امام مالك رحمهما الله په نیز د حمل زیاته موده څلور کاله دی .امام شافعی او امام مالك رحمهما الله د بعضو حکایاتو نه استدلال کوی .مثلاً فرمائي .چه محمدبن عجلان دخپلې مور په نس کې څلور کاله وو.دغه ډول هرم بن حبان،او ضحاك بن مزاحم د خپلې مور په نس کې څلور کاله وو.نو دحضرت عائشې رضي الله عنها کوم حدیث چې موږ نقل کړو دا د امام شافعی رحمه الله خلاف حجت دی .او هغوی چې په کومو حکایاتو باندې استدلال کړې دې نو یاد ساتئ چې حکایات د روایاتو معارض نشی کیدلې.

**د مطلقه وینځې اخستلونه شپږ میاشتې روسته د پیداشوی بچې نسب**

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَمَنْ تَزَوَّجَ أَمَةً اوکوم کس چې ( د بل کس) وینځې سره نکاح اوکړله. | فَطَلَّقَهَا | بیا ئې ( دوطی نه پس) دې له | |

طلاق ورکړو ثُمَّ اشْتَرَاهَا بیا ئې دا( ددې د مالك نه ) واخستله فَإِنْ جَاءَتْ بِوَلَدٍ لِأَقَلَّ مِنْ سِتَّةِ أَشْهُرٍ مُنْذُ يَوْمِ اشْتَرَاهَا
نوکه د اخستلو د وخت نه ئې شپږ میاشتې کم باندې بچې راوړو لَزِمَهُ نو نسب به دې ته لازم وی
وَإِلَّا لَمْ يَلْزَمْهُ ګنی لازم به نه وی

حل اللغة* ① العلوق: په رحم کې د نطفې استقرار ② الحادث: رستو پیدا شوې ③ خلع: د خاوند نه د څه شی په عوض طلاق اخستل ]

تشریح:- مسئله داده.چه یوکس د بل سړی وینځې سره نکاح اوکړله.بیا د وطی نه روسته ئې دې ته طلاق ورکړو.بیا ئې دا ددې د مالك نه واخستله.که د اخستلود وخت نه د شپږمیاشتو نه په کمه موده کې بچې پیدا شو.نود نسب دعوې نه بغیر به نسب ده ته لازم وی .اوکه شپږ میاشتې یا ددې نه په زیاتی کې بچې پیدا شو.نود نسب دعوه نه بغیر به نسب ده ته لازم نه وی .

لِأَنَّهُ فِي الْوَجْهِ الْأَوَّلِ وَلَدُ الْمُعْتَدَّةِ خکه چې په رومبی صورت کې دا د ښځه والی (د وخت) بچې دی. فَإِنَّ الْعُلُوقَ سَابِقٌ عَلَى الشِّرَاءِ خکه چې علوق ( نطفه) په اخستلو باندې وړاندې ده وَفِي الْوَجْهِ الثَّانِي وَلَدُ الْمَمْلُوكَةِ او په دوهم صورت کې د مملوکه وینځې بچې دې لِأَنَّهُ يُضَافُ الْحَادِثُ إِلَى أَقْرَبِ وَقْتِهِ په دې وجه به دې ته حدوث د تولو نه نژدې وخت اړخ ته منسوب وی فَلَا بُدَّ مِنْ دَعْوَةٍ نود نسب دعوی کول ضروری دی

تشریح:- دلیل دادې.چه په رومبی صورت کې چونکه د شپږ میاشتو نه په کم کې بچې پیدا شوې دې.په دې وجه معلومه شوه.چه نطفې،د اخستلو نه وړاندې قرار(ځائې) نیولې دې.نو ثابته شوه.چه دا بچې د معتده دې.اود معتده د بچی نسب د نسب د دعوه نه بغیر ثابتیږی .خکه چې د عدت په زمانه کې حکماً د ښځې فراش کیدل موجود وی .په دې وجه مونږ اووئیل.چه په دې صورت کې به نسب دې سړی ته لازم وی .او په دوهم صورت کې چونکه د بچی زیږیدل د شپږ میاشتو نه په زیاته موده کې پیدا شوې دې.نودا به د مملوکه وینځې بچې وی .خکه چې د نطفی قرار نیول،اقرب وختونو اړخ ته منسوب کیږی .او اقرب وخت مملوکه کیدل دی .نو ثابته شوه.چه د اخستلونه روسته په ملك یمین کې نطفې قرار نیولې دې.
لنډیز دا چې بچې د مملوکه وینځې دې.اود مملوکه وینځې د بچی نسب د عوه نه بغیر نه ثابتیږی .په دې وجه په دې صورت کې د نسب دعوه کول ضروری دی .

وَهَذَا إِذَا كَانَ الطَّلَاقُ وَاحِدًا بَائِنًا اودا ( حکم) هغه وخت دې.چه یو طلاق بائنه وی أَوْ خُلْعًا یا خلع أَوْ رَجْعِيًّا یا یو رجعی وی أَمَّا إِذَا كَانَ اثْنَتَيْنِ بهرحال چې کله ئې دوې [دوه] طلاق ورکړل يَثْبُتُ النَّسَبُ إِلَى سَنَتَيْنِ مِنْ وَقْتِ الطَّلَاقِ نود طلاق د وخت څخه به دوې [دوه] کالو پورې نسب ثابت وی

تشریح:- صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی .چه دا تفصیل هغه وخت دې.چه کله ئې دې ته یوطلاق بائن یا رجعی ورکړې وی .یا ئې خلع کړې وی .او که دوې [دوه] طلاقه ئې ورکړې وی .نود طلاق د وخت نه تر دوې [دوه] کاله پورې نسب ثابتیږی .

لِأَنَّهَا حَرُمَتْ عَلَيْهِ حُرْمَةً غَلِيظَةً خکه چې وینځه په خپل خاوند باندې په حرمت غلیظه سره حرام وی فَلَا يُضَافُ الْعُلُوقُ نو نطفه به نشی منسوب کولې إِلَّا إِلَى مَا قَبْلَهُ مګر د طلاق نه وړاندې ( وخت) اړخ ته لِأَنَّهَا لَا تَحِلُّ بِالشِّرَاءِ خکه چې د اخستلو په وجه دا وینځه نشی حلال کیدې.

تشریح:- دلیل دادې.چه وینځه په دوې [دوه] طلاقونو سره په حرمت غلیظه سره حرام شوه.او هرکله چې حرمت غلیظه ثابت شو.نود ملك یمین په طور باندې هم ددې سره وطی کول حرام دی .نو هرکله چې ددې سره وطی کول حرام دی .نو علوق( نطفه) هم اقرب وختونو اړخ ته نشی منسوب کیدلې.بلکه مسلمان د حرام فعل نه د بچ کاوه لپاره به دا ابعد وختونو اړخ ته منسوب کولې شی .او ابعد وختونه د طلاق نه وړاندې دی .مابعد الطلاق وخت نه دې.په دې وجه که د طلاق د وخت نه دوې [دوه] کاله په کم موده کې بچې پیدا شو.نو نسب



به لازم وی .او که خاوند دې ته یو طلاق ورکړې وی .نود طلاق نه روسته به د ملك یمین په طورباندې ددې سره وطی حلال وی .نو بچې به په دې صورت کې اقرب وختونو ته یعنی مابعد الطلاق وخت اړخ ته به منسوب کولې شی .نودا وخت به دا د مملوکه بچې وی .اود مملوکه بچې بغیر د نسب دعوه نه نه ثابتیږی .
دلته کې یو سوال کیدلې شی .هغه داچه منکوحه وینځې ته دوې [دوه] طلاقه ورکولونه روسته چې کله ئې دا واخستله. نود ملك یمین په وجه حرمت ختمیدل پکار دی .اګرچه حرمت غلیظه ولې نه وی .خکه چې الله تعالی فرمائیلی دی ((وَالَّذِينَ هُمْ لِفُرُوجِهِمْ حَافِظُونَ ۝ إِلَّا عَلَىٰ أَزْوَاجِهِمْ أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُهُمْ فَإِنَّهُمْ غَيْرُ مَلُومِينَ)) اوځوك چې د خپلو شرمګاهونو( د حرامو شهوت پوره کولو) نه محفوظ ساتی .خوخپلو ښځو سره، یا خپلو(شرعی ) وینځو سره(ددې ساتنه نه کوی ) خکه چې په دوی باندې په دې کې هیڅ الزام نشته.(بیان القرآن،پ۱۸ع۱)
ددې آیت نه معلومیږی .چه مملوکه وینځې سره وطی کول علی الاطلاق جائز ده.نود دوې [دوه] طلاقو ورکاوه نه روسته ئې چې کله دا واخستله.نو بیا هم ددې سره وطی کول نه دی جائز کیدل پکاردی .
خواب دادې.چه د الله تعالی ارشاد دې.((فَإِنْ طَلَّقَهَا فَلَا تَحِلُّ لَهُ مِنْ بَعْدُ حَتَّىٰ تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهُ))اود وینځې په حق کې دوهم طلاق داسې دې.لکه دآزادې په حق کې دریم طلاق.نودا آیت محرم دې.او رومبې آیت مبیح دې. اود تعارض په وخت محرمت ته ترجیح ورکولې شی .والله اعلم بالصواب

## دمولا د وینځې دحمل په بچې باندې د نسب دعواوډده نسب

وَمَنْ قَالَ لِأَمَتِهِ او چاچه خپلې وینځې ته اووئیل إِنْ كَانَ فِي بَطْنِكِ وَلَدٌ که ستا په نس کې بچې وی فَهُوَ مِنِّي نودا زما ( د نطفې) ځنې دې فَشَهِدَتْ عَلَى الْوِلَادَةِ امْرَأَةٌ بیا بچې پیدا شو.او یوې ښځې ګواهی ورکړه فَهِيَ أُمُّ وَلَدِهِ نودا وینځه به ددې ام ولد شی .

تشریح:- مسئله داده.چه یوکس خپلې وینځې ته اووئیل.﴿ إن كان فى بطنك ولد فهو منى﴾ بیا یوې ښځې یعنی دینړې د بچې پیدا کیدلو ګواهی ورکړله.نودا وینځه به د خپل مولا ام ولد شی .

لِأَنَّ الْحَاجَةَ إِلَى تَعْيِينِ الْوَلَدِ خکه چې ( دلته کې ) صرف د ولایت متعین کاوه حاجت دې.

تشریح:- دلیل دادې.چه د نسب ثابتیدلو سبب دادې.چه مولا د نسب دعوی اوکړی .اود مولا د اړخ دا موجود شو.خکه چې مولا وئیلی دی .چه﴿ فهو منى﴾ یعنی دا حمل زما د نطفې نه پیدا شوې دې.

وَيَثْبُتُ ذَلِكَ بِشَهَادَةِ الْقَابِلَةِ بِالْإِجْمَاعِ اودا خبره بالاتفاق د دینړې په شهادت سره ثابتیږی .

تشریح:- اوس صرف دا متعین کول دی .چه بچې پیدا شوې دې او که نه دې.نودا بالاتفاق د دینړې په شهادت سره ثابتیږی .نو هرکله چې دینړه په ولادت باندې شهادت ورکړی .نود مولا څخه به نسب ثابت شی .او وینځه به دده ام ولده شی .خودا حکم هغه وخت دې.چه د مولا د قول﴿ فهو منى﴾ د وئیلو د وخت نه شپږ میاشتې نه په کمه موده کې د وینځې بچې پیدا شوې وی .او که د شپږ میاشتو نه په زیاته موده کې بچې پیدا شوې وی .نود دعوه نه بغیر نسب نه ثابتیږی .خکه ممکن ده.چه دا د مولا د قول﴿ فهو منى﴾ د وئیلو نه روسته حامل شوې وی .نو مولا ددې بچې مدعی نشو.او په رومبی صورت کې د مولا﴿ فهومنى ﴾ وئیلو په وخت د بچې په نس کې کیدل یقینی دی .په دې وجه دې صورت کې د نسب دعوه صحیح ده.

## د بوهلك د څوی کیدلو دعوی کول او مړکیدل.اود ښځې دعوی چې دا مړی زما خاوند دې .نود میراث حکم

وَمَنْ قَالَ لِغُلَامٍ او چاچه یو هلك ته اووئیل هُوَ ابْنِي چې دا زما زوې دې ثُمَّ مَاتَ بیا مړشو فَجَاءَتْ أُمُّ الْغُلَامِ بیا ددې هلك مور راغله وَقَالَتْ او وې وئیل أَنَا امْرَأَتُهُ چې زه دده ښځه یم فَهِيَ امْرَأَتُهُ نودا ښځه به دده بی بی وی وَهُوَ ابْنُهُ اودا هلك به دده زوې وی يَرِثَانِهِ دواړه به د مړی وارثان وی

**حل اللغة:** ① **النوادر:** هغه روایات کوم چې د امام محمد نه نقل دی خو ظاهر روایات نه دی ② **وضعا** په اعتبار د وضع او مقررتیا سره ③ **عادة:** په اعتبار د عادت سره ]

**تشریح:-** صورت د مسئلې دا دې. چه یو کس یو هلك ته اوونیل. ((هو ابنی)) ،،دا زما زوی دې،، بیا دا کس مړ شو. ددې نه روسته دده مور راغله. او وې وئیل. چه زه ددې مړی ښځه (بی بی) یم. نو دا ښځه به دده بی بی وی. او دا هلك به دده زوې وی. او مور پلار به دواړه د مړی وارثان وی.

**وَفِي النَّوَادِرِ جُعِلَ هٰذَا جَوَابُ الْاِسْتِحْسَانِ** او په نوادر کې ئې دا حکم استحسانی گرخولې دې **وَالْقِيَاسُ أَنْ لَا يَكُونَ لَهَا الْمِيرَاثُ** او قیاس داوو چې دښځې لپاره میراث نه وی **لِأَنَّ النَّسَبَ كَمَا يَثْبُتُ بِالنِّكَاحِ الصَّحِيحِ** څکه چې په دې سره نسب لکه څنګه چې په نکاح صحیحه سره ثابتیږی **يَثْبُتُ بِالنِّكَاحِ الْفَاسِدِ** دغه ډول په نکاح فاسد سره هم ثابتیږی **وَبِالْوَطْءِ عَنْ شُبْهَةٍ وَبِمِلْكِ الْيَمِينِ** او په وطی بالشبه، او د ملك یمین په طور وطی سره هم (ثابتیږی) **فَلَمْ يَكُنْ قَوْلُهُ إِقْرَارًا بِالنِّكَاحِ** نو د مړی قول ،،هو ابنی،، د نکاح اقرار نشو

**تشریح:-** د امام محمد رحمه الله په نوادر کې فرمائی. چه استحسانی حکم دې. کنی قیاس خو دا وو. چه دې ښځې لپاره میراث نه وی. څکه چې نسب څنګه په نکاح صحیح سره ثابتیږی. دغه ډول په نکاح فاسد، وطی بالشبه، او په وطی بملك یمین سره هم ثابتیږی. نو د اقرار کونکی (مړی) دا رخه د هلك د خوی اقرار کول، د نکاح اقرار ته مستلزم نه دی. په دې وجه د قیاس تقاضا داده. چه ښځې ته د میراث حق نه وی.

دلته کې یو سوال دې. هغه دا چه استحساناً هم ښځې ته میراث ورکول نه دی پکار. څکه چې دلته کې نکاح اقتضاءً ثابت ده. نو د اړتیا په قدر به ثابت وی. او اړتیا پوره کیږی. د نسب په تصحیح سره. په دې وجه صرف نسب ثابتول پکار دی. د ښځې لپاره د وراثت استحقاق نه دې پکار؟

ځواب دا دې. چه په اصل کې نکاح منقسم نه ده. چه تاسو داسې اووائی. چه نکاح په دوې [دوه] قسمه ده. یو هغه چې د میراث د استحقاق سبب وی. او بله هغه چې د میراث د استحقاق سبب نه وی. نو هر کله چې نکاح اقتضاءً ثابتیږی. نو خپلو ټولو لوازمو سره به ثابتیږی. شرعاً ددې نه نه جدا کیږی. او میراث هم د داسې لوازمو څخه ده. نو هر کله چې نکاح ثابت شوه. نو د ښځې لپاره به د میراث استحقاق هم ثابت وی.

**وَجْهُ الْاِسْتِحْسَانِ** او وجه د استحسان داده **أَنَّ الْمَسْأَلَةَ فِيمَا** چې مسئله په داسې صورت کې (فرض) ده **إِذَا كَانَتْ مَعْرُوفَةً بِالْحُرِّيَّةِ وَبِكَوْنِهَا أُمَّ الْغُلَامِ** چې دښځې آزاد کیدل، او د هلك مور کیدل مشهور وی **وَالنِّكَاحُ الصَّحِيحُ هُوَ الْمُتَعَيَّنُ لِذٰلِكَ وَضْعًا وَعَادَةً** او نکاح صحیح د نسب د ثبوت لپاره شرعاً او عادتاً متعین ده.

**تشریح:-** او وجه د استحسان داده. چه مسئله په داسې صورت کې فرض کړې شوې ده. چه د هلك مور آزاده کیدل، او په حقیقت کې دده مور کیدل په خلګو کې مشهور وی. او د نسب د ثبوت لپاره شرعاً او عادةً نکاح صحیح متعین ده. نو چونکه د هلك د مور آزاد کیدل مشهور دی. په دې وجه د ملك یمین په طور د وطی کاوه احتمال ختم شو. او چونکه د نسب د ثبوت لپاره صحیح ده. په دې وجه د نکاح فاسد، او د وطی بالشبه احتمال هم ختم شو.

### د مورث په ښځه بانديې د ام ولد دعوی کول

**وَلَوْ لَمْ يُعْلَمْ** او که دا معلومه نه وی **بِأَنَّهَا حُرَّةٌ** چې دا ښځه آزاده ده **فَقَالَتِ الْوَرَثَةُ** نو وارثانو اووئیل **أَنْتِ أُمُّ وَلَدٍ** چې ته ام ولد ئې **فَلَا مِيرَاثَ لَهَا** نو ددې لپاره به میراث نه وی

**تشریح:-** او که د هلك د مور آزاد کیدل مشهور نه وی. او وارثانو اووئیل. چې ته زموږ د مورث (مړی) ام ولد وې. نو دې ښځې لپاره به میراث نه وی.

**لِأَنَّ ظُهُورَ الْحُرِّيَّةِ** څکه چې د آزاد کیدلو ښکاره کیدل، **بِاعْتِبَارِ الدَّارِ حُجَّةٌ فِي دَفْعِ الرِّقِّ** په دارالاسلام کې د رقیت



دفع کاوه کې حجت دې **لَا فِي اسْتِحْقَاقِ الْمِيرَاثِ، وَاللّٰهُ أَعْلَمُ** او حجت) نه دې د میراث د استحقاق دپاره

**تشریح:-** دلیل دا دې چې د دارالاسلام دا رخه آزادی ښکاره کیدل د مملوکیت لرې کاوه لپاره حجت وی. او استحقاق د میراث د پاره حجت نه وی. یعنی که اوونیلې شی. چه هر کله دا ښځه په دارالاسلام کې موجود ده. او په ښکاره د هیڅ چا مملوکه نه معلومیږی. نو دا ښکاره دلیل دې. چه دا اصلی آزاده ده. نو د وارثانو قول به نه قبلیږی. نو ددې ځواب ئې ورکړلو. چه د دارالاسلام د اړخه ښکاره آزادی صرف په دې حجت وی. که څوك اووائی. چه دا زما مملوکه ده. نو دده قول به نه قبلیږی. بلکه دده د ذمې څخه به مملوکیت لرې ساتلې شی. او دا حجت د میراث د استحقاق لپاره کافی نه دې. والله اعلم بالصواب. اللهم اغفرلی ولوالدی ولکاتبه ولوالدیه ومن سعی فیه

## باب الولد ومن احق به

ژباړه:- (دا) باب د بچی (د پرورش کولو) او څوك چې دده زیات حقدار وی (د هغه په بیان کې) دې.

**تشریح:-** د بچی د پرورش احکام: چونکه بچې د خپلو ضروریاتو پوره کاوه او د خپل پرورش عاجزه وی. په دې وجه شریعت د پرورش او تربیت حق ئې مور ته ورکړلو. څکه چې مور پخپل بچی بانديې زیاته مهربانه او رحمدله وی. او د د ولایت حق هغه کس له ورکړلو. چه کوم کس متفق علیه وی. نو د تصرف ولایت ئې پلار ته سپارلې دې. څکه چې د پلار رائې قوی وی. او چونکه مور هروخت په کور کې وی. په دې وجه د پلار په مقابله کې مور په پرورش کاوه بانديې زیات قدرت لری. او چونکه د نسب د ثبوت نه روسته تربیت او د پرورش اړتیا راپیښیږی. په دې وجه مصنف د هدایه رحمه الله د نسب د ثبوت نه روسته د پرورش کاوه احکام ذکر کړل.

### د جدایئ په صورت کې د بچحقدار

**وَإِذَا وَقَعَتِ الْفُرْقَةُ بَيْنَ الزَّوْجَيْنِ** او هر کله چې دښځې او خاوند په منځ کې جدائی واقع شی **فَالْأُمُّ أَحَقُّ بِالْوَلَدِ** نو د بچی زیات حقدار ددې مور ده. **لِمَا رُوِيَ** څکه روایت دې. {**أَنَّ امْرَأَةً قَالَتْ** چې یوې ښځې اووئیل **يَا رَسُولَ اللّٰهِ** ای د الله رسوله ﷺ **إِنَّ ابْنِي هٰذَا** دا زما زوې دې **كَانَ بَطْنِي لَهُ وِعَاءً** چې دده لپاره زما نس ظرف (لوخې) وو **وَحِجْرِي لَهُ حِوَاءً** او زما غیږه دده لپاره خیمه وه **وَثَدْيِي لَهُ سِقَاءً** او زما سینه دده (د څښلو) لپاره ډولونه وو **وَزَعَمَ أَبُوهُ** او اوس دده پلار وائی **أَنَّهُ يَنْزِعُهُ مِنِّي** چې دې به دا زما نه په زور اخلی **فَقَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل. **أَنْتِ أَحَقُّ بِهِ** چې هم ته ددې بچی زیاته حقداره ئې **مَا لَمْ تَتَزَوَّجِي**}[1] چه ترکومه پورې ته خپله نکاح اونکړې

**حل اللغة:** ① **الفرقة:** جدائی ② **بطن:** نس ③ **وعاء:** لوښې ④ **غیاه:** جولئ ⑤ **حواء:** خیمه ⑥ **ثدي:** سینه ⑦ **سقاء:** د څښلو لوښې ⑧ **الحضانة:** پرورش، تربیت، خسمانه ⑨ **ریق:** لیاړې ⑩ **عسل:** شهد]

**تشریح:-** مسئله: که د خاوند او دده د ښځې په مینځ کې جدائی واقع شوه. نو د بچی زیات حقدار دده مور ده. دلیل هغه حدیث دې. چه عمرو بن شعیب د خپل پلار نه روایت کړې دې. چه یوه ښځه نبی کریم ﷺ ته راغله. او وې وئیل. چه دا زما زوې دې. چه دده لپاره زما نس لوخې (مسکن) وو. او زما غیګه دده لپاره خیمه وه. او زما سینې دده لپاره ډولونه وو. او اوس دده پلار وائی. چه دې به دا زمانه اخلی. نبی کریم ﷺ اوفرمائیل. چه هم ته ددې بچی زیاته حقداره ئې. چه ترکومه پورې ته نکاح اوکړې.

**وَلِأَنَّ الْأُمَّ أَشْفَقُ** او څکه چې د مور شفقت زیات وی. **وَأَقْدَرُ عَلَى الْحَضَانَةِ** او دا په پرورش بانديې زیاته حقداره ده

1) من حدیث عمرو بن شعیب عن أبیه عن جده عبدالله بن عمرو رضي الله عنه أخرجه أبوداود فی الطلاق باب ٣٥ رقم ٢٢٧٦)_

فَكَانَ الدَّفْعُ إِلَيْهَا أَنْظَرَ نو مور ته ورکول( د بچي په حق کي ) زيات غوره دی

تشريح:- دوهم دلیل دادې چه په بچي باندې مور زیاته مهربانه وی .ځکه بچې د مور حقیقی جزء دې.ځکه چې بچي په قینچئ باندې کټ کولې شی .اود مورنه جداکولې شی .او مور د بچي په ښه طریقه پرورش کولې شی .نو مورته سپارل د بچي په حق کي بهتر دی .

وَإِلَيْهِ أَشَارَ الصِّدِّيقُ بِقَوْلِهِ اوهم دغه ډول صدیق اکبر اشاره کړې ده رِيقُهَا خَيْرٌ لَهُ مِنْ شَهْدٍ وَعَسَلٍ عِنْدَكَ يَا عُمَرُ[1] چه ای عمر ! دې بچي ته ستا د مصفا شهدو ور کاوه نه ددې ښځې تهوکانړی زیات خوښ دی . قَالَهُ حِينَ دا دوی هغه وخت اوفرمائیل وَقَعَتِ الْفُرْقَةُ بَيْنَهُ وَبَيْنَ امْرَأَتِهِ چې کله د حضرت عمر او دده د بی بی په مینځ کي جدائی واقع شوې وه وَالصَّحَابَةُ حَاضِرُونَ مُتَوَافِرُونَ په داسې حال کي چې دغه وخت صحابه کرام ښه په کثرت سره موجود وو.

تشريح:- دې اړخ ته ابوبکرصدیق اشاره کړې ده.نقل دی .چه حضرت عمر د ابوبکر په وړاندې خپلې ښځې ام عاصم سره جګړه اوکړله.چه حضرت عمر د خپلې ښځې نه عاصم په زور واخلی .نوحضرت عمر ته حصرت صدیق اوفرمائیل.ای عمر! دې بچي ته ستاد مصفاشهدو ښنبلو نه ددې مور توکانړی ښنبل زیات خوښ دی .دا واقعه د هغه وخت ده.چه حضرت عمر ام عاصم ته طلاق ورکړې وو.اودا واقعه د ډیرو صحابو په موجودګئ کي راپیښه شوې وه.او هیڅ چا د صدیق اکبر په فیصله باندې څه نکیر اونکړلو.نودا یو ډول اجماع منعقد شوه.والله اعلم.

## په پلار د بچي د نفقه وجوب

وَالنَّفَقَةُ عَلَى الْأَبِ اود بچي نفقه دده په پلار باندې لازم ده عَلَى مَا نَذْكُرُ چې دابه مونږ( په باب النفقه کي) ذکر کړو وَلَا تُجْبَرُ الْأُمُّ عَلَيْهِ او په پرورش کاوه باندې به ددې ( بچي ) مور نشی مجبورولې لِأَنَّهَا عَسَتْ خکه ممکن ده تَعْجِزَ عَنِ الْحَضَانَةِ چې دا د پرورش کولو نه عاجزه شی

حل اللغة: ① الحضانة: تربیت،خسمانه ② تستفاد: پیدا کیږی ③ اوفر:زیات ④ الاخوات: جمع د اخت،خور ⑤ الامهات:جمع د ام،مور ]

تشريح:- د بچي نفقه په پلار واجب ده.چه ددې تفصیل به په باب النفقات کي راشی .مور د بچي د پرورش زیاته حقداره ده.په دې شرط چې دا مطالبه اوکړی .خوکه دې د پرورش کاوه نه انکار اوکړلو.یا ئې مطالبه اونکړله.نومور به په پرورش کاوه باندې نشی مجبورولې.ځکه کیدلې شی .چه دا د پرورش کاوه نه عاجزه وی .خوکه د مورنه علاوه بل څوك د بچي ،،ذی رحم محرم،، نه وی .نوپه داسې صورت کي به مورد بچي په پرورش باندې مجبورولې شی .ځکه چې په داسې صورت کي که مور مجبوره نکړې شی .نود بچي حق به فوت شی .ځکه چې اجنبیه ښځه په بچي باندې مهربانه نشی کیدلې.

فَإِنْ لَمْ تَكُنْ لَهُ أُمٌّ بیا که ددې( بچي ) مور نه وی فَأُمُّ الْأُمِّ أَوْلَى نود مور مور( نیا) زیاته حقداره ده مِنْ أُمِّ الْأَبِ په نسبت د پلار مور( نیا) وَإِنْ بَعُدَتْ اګرچه د اوچتې درجې وی لِأَنَّ هَذِهِ الْوِلَايَةَ تُسْتَفَادُ مِنْ قِبَلِ الْأُمَّهَاتِ ځکه چې دا ولایت د میاندو د اړخه راځی

تشريح:- اوکه د بچي مور نه وی .په دې شان چې دا مړه شوې وی .یا کوم اجنبی سړی سره ئې نکاح کړې وی .نود مور مور( نیا) به د بچي زیاته حقداره وی .په نسبت د پلارمور( نیا) اګرچه د پورته درجې وی .یعنی پر نیا(د پلار،یاد مور نیا) یا ددې نه هم بره وی .دلیل دادې.چه دا ولایت میاندو اړخ ته ددوی د شفقت په وجه

[1] أخرجه البيهقي في السنن الكبرى (٨١٨) رقم١٥٧٦٧)_



مستفاد ده.نوکومه ښځه چې مور ته زیاته نژدې وی .هغه به دهغه ښځه نه زیاته حقداره وی .کومه چې پلارته نژدې وی .او په دې حکم کي مسلمانه اوکافره ښځه دواړه برابر دی .ځکه چې دپرورش کولوحق د شفقت په وجه وی .اوشفقت د دین په اختلاف سره نه مختلف کیږی .

فَإِنْ لَمْ تَكُنْ أُمُّ الْأُمِّ نوکه د مور مور نه وی فَأُمُّ الْأَبِ أَوْلَى نود پلار مور به زیاته حقداره وی مِنَ الْأَخَوَاتِ په نسبت ) د خویندو لِأَنَّهَا مِنَ الْأُمَّهَاتِ ځکه چې دوی هم د میاندو څخې دی وَلِهَذَا تُحْرِزُ مِيرَاثَهُنَّ السُّدُسَ اوهم په دې وجه د پلار مور( نیا) ته هم د میاندو میراث یعنی شپږمه برخه ملاویږی

تشريح:- اوکه د بچي د مورمور(نیا) او پرنیا هم نه وی .نود خویندو په مقابله کي د بچي زیاته حقداره د پلار مور(نیا) ده.ځکه چې د پلار مورهم مور وی .هم دا وجه ده.چه د پلارمورته د میاندو میراث یعنی شپږمه برخه ملاویږی .حاصل داچه لکه څنګه د مړی په ترکه کي د مړی مورته شپږمه برخه ملاویږی .په دې شرط چې د مړی د یونه زیات وروڼړه خویندې وی .د الله تعالی ارشاد دې.((فَإِنْ كَانَ لَهُ إِخْوَةٌ فَلِأُمِّهِ السُّدُسُ)) دغه ډول که د مړی د پلار مور ژوندئ وی .نودې ته به هم د مړی په ترکه کي شپږمه برخه ملاویږی .خوصرف دومره توپیر دې.چه د پلار مورته به په هرحال کي شپږمه برخه ملاویږی .که د مړی روڼړه خویندې وی .اوکه نه وی .اود مور په برخه کي لږ تفصل دې.هغه دا که د مړی اولاد او روڼړه خویندې نه وی .نو مورته به دریمه برخه ملاویږی .((فَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ وَلَدٌ وَوَرِثَهُ أَبَوَاهُ فَلِأُمِّهِ الثُّلُثُ)) او که د یونه زیات روڼړه یا خویندې وی .نو مور ته به شپږمه برخه ملاویږی .((فَإِنْ كَانَ لَهُ إِخْوَةٌ فَلِأُمِّهِ السُّدُسُ))لنډیز داچه د پلار مور،د مور په درجه کي ده.

وَلِأَنَّهَا او ددې دلیل دادې أَوْفَرُ شَفَقَةً لِلْوِلَادِ چې ددې شفقت د مورزاده (پیدانښې ) قرابت په وجه ډیر زیات دې.

تشريح:- دوهم دلیل دادې.چه د پلارد مور(نیا) شفقت د مورزاده (پیدانښې ) قرابت په وجه ډیر زیات دې.اودا ولایت په شفقت باندې مبنی دې.په دې وجه به هم د پلار مور د بچي دپرورش زیاته حقداره وی .

فَإِنْ لَمْ تَكُنْ لَهُ جَدَّةٌ بیا که ددې ( بچي ) د پلار مور( نیا) هم نه وی فَالْأَخَوَاتُ أَوْلَى مِنَ الْعَمَّاتِ وَالْخَالَاتِ نود ترورریانو ( یعنی د مورپلار د خویندو په نسبت) خویندې زیات مستحق دی لِأَنَّهُنَّ بَنَاتُ الْأَبَوَيْنِ ځکه چې دا ددې (بچي ) د مورپلار لونړه دی وَلِهَذَا قُدِّمْنَ فِي الْمِيرَاثِ اوهم په دې وجه میراث کي مقدم شوی دی

تشريح:- او که د بچي د پلار مورنه وی .نود ترورریانو(یعنی دمورپلار د خویندو) په نسبت خپلې خویندې زیاتې حقدارې دی .ځکه چې دوی ددې بچي د مورپلار لونړه دی .هم دا وجه ده.چه خویندې په میراث کي مقدم دی .دا په مبسوط کي د ،،کتاب النکاح،، روایت دې.په دې کي د قرابت د نیزدیکت رعایت ساتلې شوې دې.ځکه چې خور د ترور په مقابله کي زیاته نژدې وی .ځکه چې خور ددې بچي د پلار لور ده.او ترور ددې بچي د انا (نیا) لور ده.

وَفِي رِوَايَةٍ اوپه یو روایت کي دی الْخَالَةُ أَوْلَى مِنَ الْأُخْتِ لِأَبٍ چې د پلار خور ( ترور) د پلارشریکې خور نه زیاته متحق ده لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ځکه نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی {الْخَالَةُ وَالِدَةٌ}[1] چې ترور مور وی وَقِيلَ فِي قَوْلِهِ تَعَالَى اود الله تعالی د قول((وَرَفَعَ أَبَوَيْهِ عَلَى الْعَرْشِ)) ( په تفسیر) کي ونیلی شوی دی أَنَّهَا كَانَتْ خَالَتَهُ چې د ﴿ ابویه﴾ نه مراد د حضرت امام ابویوسف علیه السلام پلار او ترور دی . {وَرَفَعَ أَبَوَيْهِ عَلَى الْعَرْشِ}

تشريح:- خود مبسوط په ،،کتاب الطلاق،، کي دی .چه د بچي زیاته حقداره ترور ده.په نسب د پلار شریکې خور،ځکه ترور مور ته زیاته نژدې وی .او ددې تائید ددې حدیث نه هم کیږی .کوم چې بخاری اومسلم روایت کړې دې.

[1] من حديث على رضى الله عنه أخرجه أحمد فى المسند ( ١٨٩ )

په صحيحينو کې دی .چه دحضرت علی ﷛ نه په عمرة قضاء کې طويل حديث نقل دې.او په دې کې راغلی دی .چه کله مونږ خلگ د مکې نه بهر راؤوتلو.نود حضرت حمزه﷛ لور اې تره! اې تره! ونيل.او مونږ پسې نې شاته رامنډې وهلې.نو حضرت علی ،حضرت جعفرطيار ،او زيد﷛ د حضرت حمزه﷛ د لور اړه کې په جګړه شو.نوحضرت علی ﷛ اوونيل.زه ددې زيات حقدار يم.چه دا زما د اکا لور ده.او زيد بن حارثه اوونيل.چه دا خوزما د رور لور ده.(د زيد مورحضرت حمزه بن عبدالمطلب ته شيدې ورکړې وو.په دې وجه نې اوونيل.چه دا زما د رور لور ده)او حضرت جعفر بن ابی طالب اوونيل.چه دا زماد اکا لور ده.او ددې ترور زما په نکاح کې ده.نو نبی کريم ﷺ حکم اوکړلو.چه (جعفر﷛ سره) خپلې ترورسره او سيږه.او وې فرمائيل.چه ترور په منزله د مور ده.اوحضرت علی ﷛ تـه نـې اوفرمائيـل.تـه زمـاځنې نـې.اوزه سـتا ځنـې يـم.او جعفر﷛ تـه نـې اوفرمائيل.چه ته زماد صورت اوسيرت سره مشابه نې.او زيد بن حارثه﷛ ته نې اوفرمائيل.چه ته زما رور او مولا نې.

ددې حديث نه معلومه شوه.چه ترور مقدم وی .او په يو روايت کې دی .﴿ الخالة والدة﴾ او په يو روايت کې ﴿الخالة أم﴾ راغلی دی .اود ((وَرَفَعَ أَبَوَيْهِ عَلَى الْعَرْشِ)) په تفسير کې ونيلی شوی دی .چه د ابويه نه مراد د حضرت يوسف﵇ مور او ترور دی .ددې نه هم د ترور زيات حقداره کيدل معلوميږی .

## په قرابت داروکې د ترجيح مدارج

**وَتُقَدَّمُ الْأُخْتُ لِأَبٍ وَأُمٍّ** اوکومه خور چې د پلار او مور دواړو اړخه وی .هغه به په نورو خويندو باندې مقدم وی **لِأَنَّهَا أَشْفَقُ** ځکه چې ددې شفقت زيات دې **ثُمَّ الْأُخْتُ مِنَ الْأُمِّ** بيا ( هغه خور زياته حقداره ده) کومه چې صرف د مور داړخه وی . **ثُمَّ الْأُخْتُ مِنَ الْأَبِ** بيا کومه خور چې صرف د پلار د اړخه وی **لِأَنَّ الْحَقَّ لَهُنَّ مِنْ قِبَلِ الْأُمِّ** ځکه چې ددې ښځو حق دمور د اړخه دې

**حل اللغة:** ① **الخالات:** جمع د خالة: ترور ② **العمات:** جمع د عمة: ترور يعنی د پلارخور ③ **القرابة:** خپلولی ]

**تشريح:-** مسئله داده.چه کومې ښځې سره دوې [دوه] قسمه قرابت وی .نودا د يو قرابت والا ښځې نه زياته حقداره ده.لکه فرمائی .چه حقيقی خوريعنی چې د پلار او مور دواړو اړخه وی .هغه د نورو خويندو نه زياته حقداره ده.چه صرف د مور ياد پلار د اړخه خور وی .يعنی پلار شريك يا مور شريکه وی په دې وجه دې ته ترجيح ورکړې شوه.بيا به مور شريکې خورته په پلار شريکه خور باندې ترجيح ورکولې شی .ځکه چې خويندو تـه د پرورش کولوحق د مور د اړخه دې.په دې وجه بـه مورشريکې خور تـه پـه پلار شريکه خورباندې ترجيح ورکولې شی .

**ثُمَّ الْخَالَاتُ أَوْلَى مِنَ الْعَمَّاتِ** بيا تروريانې( د مورخويندې) په نسبت دپلاردخويندو مقدم دی . **تَرْجِيحًا لِقَرَابَةِ الْأُمِّ** ځکه چې دمور قرابت ته ترجيح حاصل دې **وَيَنْزِلْنَ** بيا به تروريانې درجه په درجه راکوزيږی **كَمَا نَزَلْنَا الْأَخَوَاتُ** لکه څنګه چې مونږ خويندې راکښته کړې **مَعْنَاهُ** ددې معنی داده **تَرْجِيحُ ذَاتِ قَرَابَتَيْنِ** چې دوې [دوه] قرابتيانو ته به ترجيح وی .( په يو قرابت والا باندې) **ثُمَّ قَرَابَةُ الْأُمِّ** بيا د مور والا ته **ثُمَّ الْعَمَّاتُ يَنْزِلْنَ كَذَلِكَ** بيا د مور خويندوپه شان به د پلارخويندې هم راکښته کيږی .

**تشريح:-** بيا د مور خويندې دپلار په خويندو باندې مقدم دی .ځکه چې د مور خور ته دمور سره قرابت حاصل دې.د پلارخور ته نه دې حاصل.او په پرورش کولوکښې د مور قرابت ته ترجيح ورکولې شی .د پلار قرابت ته نشی ورکولې.بيا د مورخويندې دغه ډول درجه په درجه حقداره دی .لکه څنګه چې مونږ خويندې بيان کړلې.يعنی د بچی د مورخور،ددې دمور حقيقی خور(چه د يومور پلار نه پيدا وی ) دا زيات حقدار دی .بيا ددې بچی د مورخورچه صرف مور شريکه وی .بيا هغه چې صرف پلار شريکه وی .



حاصل داچه دوې [دوه] قرابت والو ته به ترجيح ورکولې شی .بيا به د مور قرابت ته د پلار په قرابت باندې ترجيح ورکولې شی .بيا دغه ډول درجه په درجه د پلار خويندې دی .يعنی د پلار حقيقی خور مقدم ده.بيا د پلار مور شريکه خور، بيا د پلار، پلار شريکه خور ده.

## د نکاح په وجه د پرورش د حق سقوط

**وَكُلُّ مَنْ تَزَوَّجَتْ مِنْ هَؤُلَاءِ** او په دې ښځوکې هرهغه ښځه کومې چې خپله نکاح کړې وی . **يَسْقُطُ حَقُّهَا** د هغې حق به ساقطيږی **لِمَا رَوَيْنَا** د هغه حديث په وجه کوم چې مونږ روايت کړې دې

**حل اللغة:** ① **نزر:** معمولی څيز② **شزر:** تيز نظر،هغه کتل چې په هغې کې مينه محبت او شفقت نه وی ③ **نظر:** شفقت،مهربانی ]

**تشريح:-** مسئله داده.چه کومو ښځو ته د بچی د پرورش حق حاصل دې.په دوی کې که چا نکاح اوکړله .نو د دې د پرورش حق به ساقط وی .دليل هغه حديث دې.کوم چې وړاندې روايت شوې دې.يعنی نبی کريم ﷺ د بچی مور ته اوفرمائيل.﴿ انت أحق به مالم تزوجی. ﴾ ته د بچی زياته حقداره نې.چه ترڅو ته نکاح اونکړې.

**وَلِأَنَّ زَوْجَ الْأُمِّ إِذَا كَانَ أَجْنَبِيًّا** او ځکه چې کله د مور خاوند اجنبی دې. **يُعْطِيهِ نَزْرًا** نو هغه به دې (بچی ) ته معمولی شی ورکوی **وَيَنْظُرُ إِلَيْهِ شَزْرًا** او دې ته به په تيز( تريخ) نظرسره ګوری **فَلَا نَظَرَ** نو( د بچی په حق کې ) څه شفقت نشته

**تشريح:-** دوهم دليل دادې.چه ددې بچی د مور خاوند چې کله اجنبی سړې وی .نو دې بچی ته به لږ شی ورکوی .او په ورانو سترګو به ورته ګوری .(يعنی غصه به کوی ) مطلب داچه دا سړې به دې بچی اړخ ته کمه توجه ورکوی .نو بچې دده په پرورش کې ورکول،د بچی په حق کې د شفقت خيال نه ساتل دی .

**قَالَ إِلَّا الْجَدَّةَ** بغير د نيا( د مور مور) نه **إِذَا كَانَ زَوْجُهَا الْجَدَّ** چې کله ددې ( نيا) خاوند ددې (بچی) نيکه وی **لِأَنَّهُ قَامَ مَقَامَ أَبِيهِ** ځکه چې نيکه د پلار قائم مقام دې. **فَيَنْظُرُ لَهُ** نويه ده به د شفقت نظر کوی **وَكَذَلِكَ كُلُّ زَوْجٍ** اوهم دا حال د هرهغه خاوند دې. **هُوَ ذُو رَحِمٍ مَحْرَمٍ مِنْهُ** کوم چې ددې بچی ذورحم محرم وی **لِقِيَامِ الشَّفَقَةِ نَظَرًا إِلَى الْقَرَابَةِ الْقَرِيبَةِ** ځکه چې قرابت قريبه اړخ ته نظر کاوه کې شفقت موجود دې

**تشريح:-** خو که ددې بچی د مور مورخپله نکاح ددې بچی د پلار پلار سره اوکړله.يا ددې بچی د پلارمور خپله نکاح ددې بچی د مورپلار سره اوکړله.نو( په نکاح سره) ددې نياګانو د پرورش حق نه ساقطيږی . ځکه چې نيکه (يعنی د پلار پلار،ياد مور پلار) ددې بچی د پلار قائم مقام دې.نو ددوی شفقت به پاته پاتې وی .هم دا حال د هغه خاوند دې.چه هغه ددې بچی ،،ذو رحم محرم،، وی .ځکه چې د قرابت قريبه په وجه شفقت پاته پاتې وی .

**وَمَنْ سَقَطَ حَقُّهَا بِالتَّزَوُّجِ** اود کومې ښځې د پرورش حق چې د نکاح په وجه ساقط شو **يَعُودُ إِذَا ارْتَفَعَتِ الزَّوْجِيَّةُ** نو کله چې هم زوجيت لرې شی .(ددې د پرورش حق) به واپس راګرځی **لِأَنَّ الْمَانِعَ قَدْ زَالَ** ځکه چې مانع لرې شو.

**تشريح:-** اود کومې ښځې حق چې د اجنبی سړی سره د نکاح کولوپه وجه زائل شو.نو هرکله چې په دوی کې د زوجيت رشته ختمه شی .نو ددې د پرورش حق به واپس کيږی .ځکه چې کوم شی منع کونکې وو.هغه ختم شو.مثلا د بچی مور د ټولو نه زياته حقداره ده.خو دې يو اجنبی سړی سره نکاح اوکړله.تر دې چې ددې حق زائل شو.او د بچی د مورمور زياته حقداره شوه.نود مورمور دا بچې پخپل پرورش کې واخستلو.بيا څه موده روسته ددې بچی مورته خاوند طلاق ورکړلو.مطلب داچه نکاح ختمه شوه.نو بيا د مور استحقاق په نسبت د انا مقدم شو.

## د ښځې په غير موجودګئ کې د پرورش حقدار

فَإِنْ لَمْ تَكُنْ لِلصَّبِيِّ امْرَأَةٌ مِنْ أَهْلِهِ كه د بچي پرورش كونكي دده په خاندان كي څوك ښځه نه وي فَاخْتَصَمَ فِيهِ الرِّجَالُ نو دده په پرورش كي سرو جګړه اوكړله فَأَوْلَاهُمْ أَقْرَبُهُمْ نوپه دې سړو كي د ټولو نه زيات مستحق هغه سړې دې تَعْصِيبًا چې په عصبه كيدلو كي د ټولو نه زيات نژدې وي

حل اللغة: ① الصبى: ماشوم ② الصغيرة: وړه ماشومه ③ تحرز: خان ژغورل ④ مولى العتاقة: هغه مولى چې غلام ئې آزاد كړې وي ]

تشريح:- صورت د مسئلې دادې كه د بچي (ماشوم) د پرورش كولو، دده په خاندان او قبيله كي هيڅ ښځه نه وه. بيا سړو ددې بچي په پرورش كولو كي اختلاف اوكړلو. نو په دې سړو كي د پرورش كاوه ټولو نه زيات مستحق هغه دې. چه په عصبه كيدلو كي دې بچي ته په ټولو كي زيات نژدې وي.

لِأَنَّ الْوِلَايَةَ لِلْأَقْرَبِ. ځكه چې ولايت د اقرب لپاره دې وَقَدْ عُرِفَ التَّرْتِيبُ فِي مَوْضِعِهِ اود عصبياتو ترتيب پخپل ځائې معلوم شوې دې غَيْرَ أَنَّ الصَّغِيرَةَ لَا تُدْفَعُ إِلَى عَصَبَةٍ غَيْرِ مَحْرَمٍ البته صغيره به غيرمحرم عصبه ته ( پرورش كي ) نشي وركولې كَمَوْلَى الْعَتَاقَةِ لكه مولا عتاقه وَابْنِ الْعَمِّ او ( د صغيرې) د اكا زوې تَحَرُّزًا عَنِ الْفِتْنَةِ چې د فتنې نه بچ شي.

تشريح:- ځكه چې د ولايت حق زيات قرابت والا ته وي. اود عصبياتو ترتيب خپل ځائې كي معلوم شوې دې يعنى د ،، ميراث اود نكاح كاوه د ولايت په باب كي ،، او ترتيب دادې چه اول پلار دې. بيا نيكه (د پلار پلار) بيا پرنيكه (د پلار نيكه) بيا هغه څوك دې چه ددې نه اوچت وي. بيا حقيقى رور دې. بيا پلار شريك رور دې. بيا د حقيقى رور خوې، بيا د پلار شريك رور خوې، بيا هغه اكا چې د پلار حقيقى رور وي. بيا هغه اكا چې د پلار پلار شريك رور وي. او پاتې شو د اكا اولاد، نود دوى په پرورش كي هلك وركولې شي. او په دوى كي به ترتيب دا وي. چه اول به دهغه اكا زوې مستحق وي. چه هغه ددې بچي د پلار حقيقى رور وي. بيا د هغه اكا خوې، چه هغه ددې بچي د پلار پلار شريك رور وي. او انجلى به د اكا اولاد په پرورش كي نشى وركولې. ځكه چې د انجلى د اكا اولاد ددې غيرمحرم دى.

او كه د ماشومې هيڅ عصبه ولى نه وي. نودا ماشومه به د مورشريك رور په ترتيبت وركولې شي. او كه دا هم نه وي. نو دده زوې ولى دې. او كه دا هم نه وي. نوددې ماشومې ولى به هغه اكا وي. چه ددې د پلار، مورشريك رور وي. او كه داهم نه وي. نو ددې ماشومې ولى به ددې حقيقى ماما وي. (يعنى ددې ماشومې د مور حقيقى رور) بيا ددې ماشومې د مور پلارشريك رور، بيا ددې ماشومې د مور مورشريك رور، دا خبره دې ښكاره وي. چه دغيرعصبياتو لپاره د ولايت حق د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دې. اوچونكه مولا عتاقه اخرى عصبه دې. په دې وجه كه هيڅ څوك ولى نه وي. نو هلك به د مولا عتاقه په ترتيبت كي وركولې شى. خو انجلى به د هيڅ غير محرم عصبه په تربيت كي نشى وركولې. لكه د اكا خوې، او مولا عتاقه. ځكه چې په دې كي د فتنې خطره ده.

او كه د يوبچي څو رونړه وي. نو په دوى كي چې كوم زيات نيك عمله او متقى وي. ددې بچي د پرورش زيات حقدار دې. او كه په نيكۍ او تقوى كي واړه برابر وي. نو په دوى كي چې په عمر كي د ټولو نه لوې وي. هغه به زيات حقدار وي.

### دماشوم هلك د پرورش لپاره د مور اونيا دحق موده

وَالْأُمُّ وَالْجَدَّةُ أَحَقُّ بِالْغُلَامِ مور او نيا ( د مورمور) د هلك زيات حقدار دى حَتَّى يَأْكُلَ وَحْدَهُ. تردې چې دې يواځې (جدا) اوخوري وَيَشْرَبَ وَحْدَهُ او خانله اوڅكى. وَيَلْبَسَ وَحْدَهُ او خانله واغوندى وَيَسْتَنْجِيَ وَحْدَهُ او خانله استنجا اوكړى وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ او په جامع صغيركي دى حَتَّى يَسْتَغْنِيَ تردې چې هلك بې پرواه شى



فَيَأْكُلَ وَحْدَهُ چې يواځې اوخوري وَيَشْرَبَ وَحْدَهُ او خانله اوڅكى وَيَلْبَسَ وَحْدَهُ او خانله واغوندى وَالْمَعْنَى وَاحِدٌ او معنى ( د دواړو) يوه ده لِأَنَّ تَمَامَ الِاسْتِغْنَاءِ بِالْقُدْرَةِ عَلَى الِاسْتِنْجَاءِ ځكه چې پوره استغناء خو په استنجاء باندې قادركيدلو سره كيږى

حل اللغة: ① يستنجى: استنجاء كوى ② التاديب: ادب وركول ③ التخلق: اخلاق پيدا كول ④ التثقيف: مهذب كول

تشريح:- مسئله داده. چه مور، اود مورمور (نيا) د بچي د پرورش زياته حقداره هغه وخته پورې وى. چه تركومه وخته پورې بچې پخپله خوراك پيل كړى. او خانله ځنبلې شى. او پخپله كپړې اغوستلې شى. او پخپله استنجاء كولې شى. حضرت امام محمد رحمه الله په جامع صغير كي ذكركړى دى. چه مور او انا د هلك زيات حقدار هغه وخته پورې دى. چه بچى مستغنى شى. چه دې خانله خوراك كولې شى. خانله ځنبلې شى. او خانله كپړې اغوستلې شى. په دواړه روايتونوكي دا توپير دې. چه په قدورى كي استنجاء ذكر ده. مستغنى كيدل ذكر نه دى. اوپه جامع صغير كي ددې په عكس ذكر دى. حاصل د دواړه روايتونو يو دې. ځكه چې پوره مستغنى كيدل هغه وخت كيږى. چه كله بچې په استنجاء قدرت لرلې شى. او په استنجاء باندې قدرت دادې. چه په پيل كي پايكالى پرانستلو باندې قدرت لرى. او د فراغت نه روسته په تړلو باندې قادر شى.

وَوَجْهُهُ او ددې وجه داده أَنَّهُ إِذَا اسْتَغْنَى چې هركله دې بې پرواه شو يَحْتَاجُ إِلَى التَّأَدُّبِ وَالتَّخَلُّقِ بِآدَابِ الرِّجَالِ وَأَخْلَاقِهِمْ نو ده ته د سړو آداب او اخلاق ايزده كاوه اړتيا دې وَالْأَبُ أَقْدَرُ عَلَى التَّأْدِيبِ وَالتَّثْقِيفِ اود ادب خودلو اود مهذب كاوه پلار ته زيات قدرت دې وَالْخَصَّافُ رحمه الله قَدَّرَ الِاسْتِغْنَاءَ بِسَبْعِ سِنِينَ او شيخ خصاف د مستغنى كيدلو اندازه اووه كالو سره كړې ده اعْتِبَارًا لِلْغَالِبِ ځكه چې غالب حالت هم دادې

تشريح:- د استغناء ذكر كاوه وجه دا ده. چه كله بچې مستغنى شى. نودې د سړو آداب اواخلاق زده كاوه محتاج وى. اود بچي په مؤدب جوړولوكي پلار ته زيات قدرت حاصل وى. نواوس به دې د مور د تربيت نه اوځى. او د پلار په تربيت كي به داخليږى. امام ابوبكر خصاف رحمه الله د مستغنى كيدلو اندازه اووه كاله خودلې ده. ځكه ماشوم د اووه كاله په عمركي په عامه توګه د مور د پرورش نه مستغنى كيږى. اودې خانله په استنجاء كولوباندې قادركيږى. فتوى هم په دې ده. [؟]

### دماشومې انجلى د پرورش لپاره د مور اونيا د حق موده

وَالْأُمُّ وَالْجَدَّةُ أَحَقُّ بِالْجَارِيَةِ او مور اونيا ( د مورمور) د انجلى به پرورش كي زيات مستحق دى حَتَّى تَحِيضَ. تردې چې دې ته حيض راشى لِأَنَّ بَعْدَ الِاسْتِغْنَاءِ تَحْتَاجُ إِلَى مَعْرِفَةِ آدَابِ النِّسَاءِ ځكه چې ( پرورش نه) د بې پرواه كيدلو نه روسته دې ته د ښځو اداب ايزده كاوه حاجت دې وَالْمَرْأَةُ عَلَى ذَلِكَ أَقْدَرُ او ښځه په دې كار باندې زياته حقداره ده وَبَعْدَ الْبُلُوغِ تَحْتَاجُ إِلَى التَّحْصِينِ اود بالغ كيدلو نه روسته ( ددې په نكاح سره ) دمحصنه كولو وَالْحِفْظِ اود ( زنا نه) د ساتنه كاوه اړتيا دې وَالْأَبُ فِيهِ أَقْوَى وَأَهْدَى او په دې كارباندې پلار ته زيات قوت او راهنمائى حاصل ده

حل اللغة: ① الجارية: انجلى ② التحصين: ساتنه وركول ③ الصيانة: ساتنه ④ اقوى: زيات قوى ]

تشريح:- امام قدورى رحمه الله فرمائى. چه انجلى به د حيض راتګ و وخت پورې د مور او انا په پرورش كي وى. ځكه چې د پرورش نه د مستغنى كيدلو نه روسته دې ته د ښځو آداب زده كولوحاجت وى. مثلاً كاتنا (مالوچ ډانډت كول) ګنډل، خوراك پخول، كپړې وينځل، او ښځه په نسبت د سړو په دې څيزونو باندې زيات قدرت لرى. ځكه كه انجلى د پلار حواله شوه. نود سړو د مخلوط اوسيدلو په وجه سره به ددې شرم اوحيا كمه شى. حالانكه حياء د ښځو لپاره زينت دې. اود بالغ كيدلو نه پس، ددې د نكاح په ذريعه د محصنه

کولو، اود زنا نه د ساتنه کاوه اړتیا دي.او پلار ته په دي کار باندي زیات قدرت حاصل دي.اودي کار اړخ ته زیاته راهنمائی حاصل ده.په دي وجه د بالغ کیدلو نه روسته د انجلی زیات حقدار پلار دي.

وَعَنْ مُحَمَّدٍ رحمه الله اود امام محمد رحمه الله نه نقل دی أَنَّهَا تُدْفَعُ إِلَى الْأَبِ إِذَا بَلَغَتْ حَدَّ الشَّهْوَةِ (١) چې هرکله انجلی د شهوت حد ته اورسیږی .نو پلار ته به ور کولای شی لِتَحَقُّقِ الْحَاجَةِ إِلَى الصِّيَانَةِ ځکه چې ددې د ساتنه اړتیا دي.

تشريح:- هشام د امام محمد رحمه الله نه روایت کړي دي.چه انجلی هرکله د شهوت حد ته اورسی .نوپلارته به حواله کولې شی .ځکه چې اوس ددې د ساتنه اړتیا دي.اود شهوت په حد کي د فقهاؤ اختلاف دي.د بعضومذهب دادي.چه یوولس کاله عمر د شهوت دي.او فقیه ابوالليث رحمه الله فرمائی .چه نه کاله عمر د شهوت حد دي.او یوقول د شپږ کالو په اړه کي دي.او یو د اووه کاله، او یو د اته کالو په اړه کي دي. والله اعلم

## د صغیرې لپاره د مور او نیاګانو نه علاوه د نوروخلقو سره د اوسیدلو موده

وَمَنْ سِوَى الْأُمِّ وَالْجَدَّةِ أَحَقُّ بِالْجَارِيَةِ اود مور او نیا ( د مورمور) نه علاوه ( پاته ښځې) د صغیره انجلی په پرورش کي دي حده پورې حقداري دی حَتَّى تَبْلُغَ حَدًّا تُشْتَهَى چې انجلی د سړو د خواهش قابله شی

تشريح:- شیخ قدوری رحمه الله فرمائی .چه صغیره د مور او نیاګانو نه علاوه، نورو ښځوسره د شهوت د حده پورې ساتلې شی.

وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ او په جامع صغیر کي دی دی حَتَّى تَسْتَغْنِيَ چې دا ( د نورو د مدد) نه مستغنی شی لِأَنَّهَا لَا تَقْدِرُ عَلَى اسْتِخْدَامِهَا ځکه چې د مور او انا نه علاوه هیڅ یوه ښځه ددې انجلی نه په خدمت اخستلو قادرنه وَلِهَذَا لَا تُؤَاجِرُهَا لِلْخِدْمَةِ او هم په دې وجه دا انجلی د خدمت لپاره په اجاره او نوکرئ باندي نشی ورکولې فَلَا يَحْصُلُ الْمَقْصُودُ نو مقصود به نه حاصلیږی

تشريح:- امام محمد رحمه الله په جامع صغیرکي فرمائیلی دی .چه صغیره به د مور او نیاګانو نه علاوه نورو خلګو سره دومره مودې پورې ساتلې شی .چه دا صغیره دچا د کومک محتاجه پاتې نشی .یعنی ځانله خوراك کولی شی .او ځانله اغوستلې شی .ځکه چې صغیره اګرچه د ښځو د آدابو زده کولومحتاج ده.خو په آدابو خودلوکي د صغیره نه یو ډول خدمت هم اخستلې شی .اود مور اونیاګانو نه علاوه نورو خلګو ته شرعاً د خدمت اخستلوحق نشته.هم دا وجه ده.چه انجلی د خدمت د پاره په اجرت باندې ورکول ممنوع دی .نوکه د شهوت حد ته د رسیدلو نه روسته د مور او نیاګانو نه علاوه ( بل چا) سره پریخودلې شوه. نو په دې سره به مقصود(آداب زده کول) نه حاصلیږی .

بِخِلَافِ الْأُمِّ وَالْجَدَّةِ په خلاف د مور او انا لِقُدْرَتِهِمَا عَلَيْهِ شَرْعًا ځکه چې دا دواړه شرعاً په خدمت اخستلو باندې قادر دی .

تشريح:- ددې په خلاف مور او اناګانی دی .چه دوی سره انجلی پریخودلې شی .ځکه چې مور او اناګانی د انجلی نه په خدمت اخستلو شرعاً قادر دی .

## د وینځې او ام ولد آزادیدلو نه روسته په بچي ددوی د پرورش مرتبه

قَالَ قدوری رحمه الله فرمائی وَالْأَمَةُ إِذَا أَعْتَقَهَا مَوْلَاهَا وینځه چې کله ددې مولا آزاده کړله وَأُمُّ الْوَلَدِ إِذَا أُعْتِقَتْ او ام

(١) القول الراجح هو قول محمد رحمه الله كذا في فتح القدير(١٨٨\٤) والبحرالرائق (١٧٠\٤) وردالمحتار(٦٩٦\٢) وتبيين الحقائق (٤٩\٣) ومجمع الأنهر(٤٩٠\١) والهندية (٥٤٣\١) نقلاً عن القول الراجح (٣٨٠\١)-



ولد چې کله آزاده کړې شوه كَالْحُرَّةِ فِي حَقِّ الْوَلَدِ نود بچي په حق کی د آزادې ښځې پشان دی

تشريح:- مسئله داده.که وینځه ددې مولا آزاده کړله.او هرکله چې ام ولد آزاده کړې شوه.نود بچی په پرورش کې ددې حق هم د آزادې ښځې پشان دي.ددې صورت دادي.چه مولا د خپلې وینځې یو سړی سره نکاح اوکړله.دهغه نه ئې بچې پیدا شو.بیا مولا دا آزاده کړله.نو ددې بچی د پرورش حقداره به هم دا مور وی.

لِأَنَّهُمَا حُرَّتَانِ أَوَانَ ثُبُوتِ الْحَقِّ ځکه چې د حق ثابتولو په وخت دا دواړه هم آزاد دی وَلَيْسَ لَهُمَا قَبْلَ الْعِتْقِ حَقٌّ فِي الْوَلَدِ اود آزادیدو نه وړاندې ددې دواړو د بچی پرورش کي هیڅ حق نشته لِعَجْزِهِمَا عَنِ الْحَضَانَةِ بِالِاشْتِغَالِ بِخِدْمَةِ الْمَوْلَى ځکه چې د مولا په خدمت کي د مشغولیدو په وجه دا دواړه د پرورش کاوه نه عاجز دی.

تشريح:- دلیل دادې.چه د پرورش کاوه د حق ثابتولو په وخت دا دواړه آزاد دی .نود خپل مولا په مقابله کي به دا دواړه د بچی د پرورش زیات حقدار وی .اود آزادیدلو نه وړاندې د وینځې اود ام ولد د پاره د بچی په پرورش کي هیڅ حق نشته.ځکه چې دا دواړه د مولا په خدمت کي د مشغولیدلو په وجه د بچی د پرورش کاوه نه عاجزه دی .د امام شافعی اوامام احمد رحمهما الله هم دا قول دي.

## د ذمیه کتابیه ښځې پخپل مسلمان بچي د پرورش حق

وَالذِّمِّيَّةُ أَحَقُّ بِوَلَدِهَا الْمُسْلِمِ او ذمیه ښځه د خپل مسلمان بچي زیاته حقداره ده مَا لَمْ يَعْقِلِ الْأَدْيَانَ تر هغه وخته پورې چې بچې دینونه نه پیژنی أَوْ يُخَافَ أَنْ يَأْلَفَ الْكُفْرَ یا دا یره نه وی .چه دا به کفرسره مینه اوکړی لِلنَّظَرِ قَبْلَ ذَلِكَ ځکه چې په دې سره د بچی ( په حق کي ) د شفقت نظر دي. وَاحْتِمَالِ الضَّرَرِ بَعْدَهُ او د دې نه روسته د ضرر احتمال دي.

تشريح:- مسئله که یومسلمان سړی د یوې ذمیه کتابیه ښځې سره نکاح اوکړله.بیا ددې نه بچې پیدا شو. نو دابچې به د "خير الأبوين دينا" تابع وی .یعنی د مسلمان پلار تابع به وی .او مسلمان به وی .خوددې بچی د پرورش کاوه زیات مستحق به ددې ذمیه مور وی .خودا استحقاق به د ذمیه لپاره ترهغه وخته پورې وی .چه ترکومه وخته پورې په ده کي د دین سمجه (پوهه) نه وی .اود بچی په کفر باندې د متاثره کیدلو ویره نه وی .او هرکله چې بچې په دین او مذهب باندې پوهه شی .یا د بچی په کفر سره د متاثره کیدلو خطره وی .نو په داسې حالت کي به د بچی د پرورش کاوه مستحق ذمیه ښځه نه وی .

دلیل دادې.چه ددې حالت نه وړاندې بچې د ذمیه په سپارلوکي په ده باندې شفقت دي.او ددې حالت نه پس د ضرر احتمال دي.په دې وجه .چې کله بچې په دین باندې پوهه شی .نودا به د ذمیه نه اخستلې شی . او مسلمان پلار ته به ورکولې شی .

## د هلك اوانجلی لپاره په مورپلار کي د خوښولو اختیار

وَلَا خِيَارَ لِلْغُلَامِ وَالْجَارِيَةِ او هلك او انجلی ته پخپله هیڅ اختیار نشته

حل اللغة: ① الدعة: آرام ،سهولت ② التخلية: خوشې کول③ اللعب: بازي ]

تشريح:- مسئله داده.چه هلك اوانجلی ته پخپله اختیار نشته.یعنی داسې نشی کیدلې.چه په مورپلار کي د یوکس د خوښولو اختیارهلك اوانجلی ته ورکړې شی .

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رحمه الله او امام شافعی رحمه الله فرمائی لَهُمَا الْخِيَارُ چې دې دواړو ته اختیار دي لِأَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ خَيَّرَ (١) ځکه چې نبی کریم ﷺ اختیار ورکړې وو

(١) من حديث أبي هريرة رضي الله عنه أخرجه أبوداود في الطلاق باب ٣٥ رقم ٢٢٧٧ والنسائي في الطلاق رقم ٣٢٧ والترمذي

**تشریح:-** امام شافعی رحمه الله فرمائی . چې هرکله هلك اوانجلی د تمیز حد ته اورسیږی .نو مور او پلار دواړوکي به یوکس اختیاروی .او هغه ته به سپارلې شی .[؟]

د دوی دلیل دادې.چه نبی کریم ﷺ یو هلك ته اختیار ورکړې وو.چه دې پخپل مورپلار کې کوم یوکس غواړی .اختیار کړی .او روایت دې چې رافع بن سنان رضی الله عنه مسلمان شوې وو.اودده ښځې د اسلام راوړلو نه انکار اوکړلو.نودا نبی کریم ﷺ له راغله.او وې وئیل.دا زما شیدې پریخودنکی لور ده.او رافع اووئیل.چه زما لور ده.نبی کریم ﷺ اوفرمائیل.یو اړخ ته کینه .او دده ښځې ته ئې هم اووئیل.چه ته هم یو اړخ ته کینه.او بچې ئې د دواړو په مینځ کې کینولو بیا نبی کریم ﷺ اوفرمائیل. چې دې بچی ته دواړه آواز اوکړئ.نو ماشومه خپلې مور اړخ ته مائله شوه.نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل. اې الله ! دې ته هدایت اوکړې.نودا ماشومه خپل پلار اړخ ته مائله شوه.ده خپل بچې پخپل پرورش کې واخستلو.ددې حدیث نه معلومه شوه.چه هلك اوانجلی ته به د مور او پلار په مینځ کې اختیار ورکولې شی .کوم چې دوی خوښ کړی .هغه به د پرورش زیات حقدار وی .(عنایه)

وَلَنَا او زموږ دلیل دادې أَنَّهُ لِقُصُورِ عَقْلِهِ يَخْتَارُ چې بچې د خپل کم عقل توب په وجه هم هغه اختیاروی مَنْ عِنْدَهُ الدَّعَةُ چاسره چې دته آرام ملاؤ شی لِتَخْلِيَتِهِ بَيْنَهُ وَبَيْنَ اللَّعِبِ د بچې او لوبو په مینځ کې د تخلیه کاوه په وجه به فَلَا يَتَحَقَّقُ النَّظَرُ نظر شفقت نه متحقق کیږی وَقَدْ صَحَّ أَنَّ الصَّحَابَةَ رضی الله عنهم لَمْ يُخَيِّرُوا، (١) اودا خبره صحیح ده چې صحابه کرامو رضی الله عنهم بچو ته اختیار نه وو ورکړې

**تشریح:-** زموږ دلیل دادې.چه بچې به دخپل کم عقل توب په وجه هغه کس اختیار کړی .چه دهغه سره به دې بچی ته (ظاهری ) راحت ملاؤ شی .یعنی څوك چې به دې لوبو(او خوشو ګرځیدول) لپاره آزاد پریږدی . هغه له به ترجیح ورکړی .او ښکاره خبره ده.چه په داسې کاوه سره د شفقت لحاظ نه متحقق کیږی . په دې وجه د بچې په اختیارولو باندې د پرورش حق نشی ورکولې.اودا خبره صحت ته رسیدلې ده.چه صحابو رضی الله عنهم بچی له اختیار نه دې ورکړې.

أَمَّا الْحَدِيثُ .او پاتې شو حدیث فَقُلْنَا نو موږ وایو قَدْ قَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ چې رسول الله ﷺ فرمائیلی دی {اللَّهُمَّ اهْدِهِ} اې الله تعالی ده ته هدایت اوکړې فَوُفِّقَ لِاخْتِيَارِهِ الْأَنْظَرَ بِدُعَائِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ (٢) نود نبی کریم ﷺ په دعا سره بچی په خپله خوښئ کې ټیك توفیق ملاؤ شو

**تشریح:-** پاتې شو دا حدیث کوم چې حضرت امام شافعی رحمه الله په دلیل کې پیش کړې دې.نو علامه مرغینانی رحمه الله ددې دوې [دوه] ځوابونه ورکړی دی .اول داچه د نبی کریم ﷺ په دعا سره دې بچی له د اختیارولو توفیق ورکړې شو.چه دده لپاره د شفقت باعث وو.او ښکاره خبره ده.چه عام خلګ په نبی کریم ﷺ باندې نشی قیاس کیدلې.

أَوْ نَحْمِلُ عَلَى مَا یا به دا حدیث په داسې صورت باندې محمول کولای شی إِذَا كَانَ بَالِغًا چې بچې بالغ وی

**تشریح:-** دوهم ځواب دادې.چه داحدیث به په هغه صورت باندې محمول کولې شی .چه بچې بالغ شوې وی . د صاحب دهدایه رحمه الله دوهم ځواب قابل قبول نه دې.ځکه چې موږ کوم حدیث ذکر کړې دې.په دې کې د

فی الطلاق باب ٢١ وابن ماجه فی الأحکام باب ٢٢ رقم ٢٣٥١ والدارمی فی الطلاق باب ١٦ وأحمد فی المسند (٢٤٦\٢)_

١) فیه أحادیث منها حدیث أبی هریرة رضی الله عنه المتقدم)_

٢) من حدیث رافع بن سنان رضی الله عنه أخرجه أبوداود فی الطلاق باب ٣٦ رقم ٢٢٤٤ والنسائی فی الفرائض والحاکم فی المستدرک والدارقطنی فی سننه (٤٣\٤) رقم ١٢٧)_



﴿وهی فطیم﴾ تصریح موجود ده.او فطیم وائی .هغه ماشوم ته.چې دهغه اوس اوس تئ پریخودلې شوې وی .نو ددې تصریح نه روسته حدیث په بالغ کیدلو باندې څنګه محمول کولې شی.

## د مطلقه ښځې لپاره د خپل بچې د ښار نه د ویستلو اختیار

فصل: وَإِذَا أَرَادَتِ الْمُطَلَّقَةُ که مطلقه ښځې اوغوښتل أَنْ تَخْرُجَ بِوَلَدِهَا مِنَ الْمِصْرِ چې خپل بچې ددې ښار نه بهر بوځی فَلَيْسَ لَهَا ذَلِكَ نودې ته دا اختیار نشته.لِمَا فِيهِ مِنَ الْإِضْرَارِ بِالْأَبِ ځکه چې په داسې کاوه سره پلار ته ضرر رسول دی إِلَّا أَنْ تَخْرُجَ بِهِ إِلَى وَطَنِهَا البته دا خپل وطن ته بوتلې شی وَقَدْ كَانَ الزَّوْجُ تَزَوَّجَهَا فِيهِ او حال داچه خاوند دې ښځې سره هم په دغه مقام کې نکاح کړې وی

**حل اللغة:** ① الاضرار: ضرر رسول ② بلدة: ښار③ یبیت شپه تیروی ④ القریتین تثنیه د قریة کلې ⑤ المکث: درنګ تیرول،وخت تیرول]

**تشریح:-** مسئله داده.چه د عدت پوره کیدلو نه روسته که مطلقه ښځه اوغواړی.چه خپل بچې ددې ښار نه بهر بوځی .نودې ته دا اختیار نشته.ځکه چې په داسې کولوکې پلار ته د خپل بچې په جدایئ کې تکلیف وی .خوکه دا بچې خپل وطن ته بوتلل اوغواړی . په داسې حال کې چې خاوند دې ښځې سره هم په دې مقام کې نکاح کړې وی .نو ښځې ته ددې اختیار شته. (چه هلته کې ئې بوځی ) [؟]

لِأَنَّهُ الْتَزَمَ الْمُقَامَ فِيهِ عُرْفًا وَشَرْعًا ځکه چې د عرفاً او شرعاً هم هلته قیام کول په ځان باندې لازم کړی وو قَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی . {مَنْ تَأَهَّلَ بِبَلْدَةٍ چې کوم سړی په کوم ښار کې نکاح اوکړله فَهُوَ مِنْهُمْ} (١) نو دې هم ددوی څنې دې وَهَذَا يَصِيرُ الْحَرْبِيُّ بِهِ ذِمِّيًّا اوهم په دې وجه حربی کافر په نکاح کاوه سره ذمی کیږی

**تشریح:-** دلیل داد ی .چه د ښځې په وطن کې نکاح کولوسره عرفاً اوشرعاً هلته کې قیام کول په خپل ځان باندې لازم کړې وو.عرفاً ځکه چې خاوند عادةً په هغه ښار کې قیام کوی .په کوم ښارکې چې نکاح اوکړی .او شرعاً ځکه چې نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی .﴿ من تأهل ببلدة فهو منهم ﴾ یعنی کوم سړی چې په کوم ښارکې نکاح اوکړله.نودې هم د هغوی څنې دې. او ابن ابی شیبه رحمه الله په خپل مصنف کې د حضرت عثمان رضی الله عنه نه روایت نقل کړې دې.چه دوی په منی کې پوره څلور رکعته لمونځ اوکړو.بیا ئې اوفرمائیل. ﴿قال رسول الله ﷺ من تأهل فی بلدة فهومن أهلها یصلی بصلاة المقیم وإنی تأهلت منذ قـدمت مکـة﴾ یعنی رسول الله ﷺ فرمائیلی دی .چه کوم کس په کوم ښار کښې نکاح اوکړله.نودې هم هغه ښار والوکې شمارلې شی .چه دې د مقیم لمونځ اوکړی .اوزه چې کوم وخت مکې ته داخل شوم.نو ما یوې ښځې سره نکاح اوکړله.او په یو روایت کې دی .﴿ سمعت رسول الله ﷺ یقول من تأهل فی بلدة فیصلی بصلاة المقیم ﴾ ځکه چې په دې کې د بچی په حق کې بهتری ده.چه دې د ښار د خلګو اخلاق زده کړی .او په دې کې د پلار په حق کې هم څه ضررنشته.اوکه ددې په عکس د ښار نه بهر کلی ته بوتلل اوغواړی .نود بچی په حق کې ضرر دې.ځکه چې د باندیچیانو اخلاق به زده کړی .نو ښځې ته د داسې کاوه اختیار نشته.

وَإِنْ أَرَادَتِ الْخُرُوجَ إِلَى مِصْرٍ غَيْرِ وَطَنِهَا او که ښځې د خپل وطن نه علاوه په بل یو ښار کې ( بچې ) بوتلل اوغوښتل وَقَدْ كَانَ التَّزَوُّجُ فِيهِ حالانکه هلته کې نکاح واقع شوې ده أَشَارَ فِي الْكِتَابِ نو په کتاب( قدوری ) کې دا اشاره ده إِلَى أَنَّهُ لَيْسَ لَهَا ذَلِكَ چې ښځې ته دا اختیار نشته وَهَذَا رِوَايَةُ كِتَابِ الطَّلَاقِ اودا ( دمبسوط) د کتاب الطلاق روایت دې

١) من حدیث عبدالله بن عبدلارحمن بن الحارث بن أبی ذئاب عن أبیه أخرجه ابی ابی شیبة فی مصنفه (نصب:٣٩٥\٣)_

**تسهیل**: د ترجمې څخه مطلب واضح دي

**وَقَدْ ذَكَرَ فِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ** او په جامع صغیر کې ذکر دی **أَنَّ لَهَا ذَلِكَ** چې ښځې ته اختیار حاصل دي **لِأَنَّ الْعَقْدَ مَتَى وُجِدَ فِي مَكَانٍ** خکه چې په کوم مقام کې عقد واقع وی **يُوجِبُ أَحْكَامَهُ فِيهِ** نود عقد احکام هم په هغه مقام کې واجبیږی **كَمَا يُوجِبُ الْبَيْعُ التَّسْلِيمَ فِي مَكَانِهِ** لکه څنګه چې بیع کوم ځائې کې واقع وی .مبیع هم هلته کې سپارل واجب وی **وَمِنْ جُمْلَةِ ذَلِكَ** اود عقدیو حکم دا هم دي **حَقُّ إِمْسَاكِ الْأَوْلَادِ** چې اولاد خان سره اوساتی او پرورش نې اوکړی .

**تشریح**: د ترجمې څخه مطلب واضح دي

**وَجْهُ الْأَوَّلِ** او رومبې یعنی د مبسوط د کتاب الطلاق روایت وجه داده **أَنَّ التَّزَوُّجَ فِي دَارِ الْغُرْبَةِ** چې کله نکاح کول په پردی وطن کې واقع شوی وی **لَيْسَ الْتِزَامًا لِلْمُكْثِ فِيهِ عُرْفًا** نودا عرف نه دي.چه هم هلته کې اوسیدل نې په خان لازم کړل **وَهَذَا أَصَحُّ** اوهم دا روایت زیات صحیح دي **وَالْحَاصِلُ أَنَّهُ لَا بُدَّ مِنَ الْأَمْرَيْنِ جَمِيعًا** او حاصل دا راؤوتلو چې ښځې ته د بچی بهر ته د بیولو (بوتللو) لپاره به اجازت هغه وخت وی .چه دواړه خبری اوموندې شی **الْوَطَنُ** یودا چې دا د ښځې وطن وی **وَوُجُودُ النِّكَاحِ** او دوهم داچه هم هلته کې نکاح موجود شوی وی

**تشریح**: د ترجمې څخه مطلب واضح دي

**وَهَذَا كُلُّهُ** اودا تفصیل هغه وخت دي **إِذَا كَانَ بَيْنَ الْمِصْرَيْنِ تَفَاوُتٌ** چې کله د دواړو په مینځ کې ( دومره) تفاوت او لرې والې وی .( چې پلار خپل بچې اووینی .او خپل کورکې شپه نشی تیرولې) **أَمَّا إِذَا تَقَارَبَا** اوکه دواړه ( ښارونه) دومره نژدې وی ، **بِحَيْثُ يُمْكِنُ لِلْوَالِدِ أَنْ يُطَالِعَ وَلَدَهُ** چې پلار کله اوغواړی .لاړشی .خپل بچې اووینی **وَيَبِيتَ فِي بَيْتِهِ** او واپس خپل کورکې شپه تیرولې شی **فَلَا بَأْسَ بِهِ** نود ښځې لپاره بچې هلته کې بیولو (بوتللو) کې هیڅ باك نشته **وَكَذَا الْجَوَابُ فِي الْقَرْيَتَيْنِ** اوهم دا حکم د دوې [دوه] کلو په مینځ کې دي

**تشریح**:- د ترجمې څخه مطلب واضح دي

**وَلَوِ انْتَقَلَتْ مِنْ قَرْيَةِ الْمِصْرِ** اوکه ښځه د ښار د کلی نه اووتله **إِلَى الْمِصْرِ** او ښار ته ئې بوتلل اوغوښتل **لَا بَأْسَ بِهِ** نو هیڅ باك نشته **لِأَنَّ فِيهِ نَظَرًا لِلصَّغِيرِ** خکه چې په دې کې د بچی په حق کې بهتری ده **حَيْثُ يَتَخَلَّقُ بِأَخْلَاقِ أَهْلِ الْمِصْرِ** چې د ښار والو اخلاق ایزده کړی **وَلَيْسَ فِيهِ ضَرَرٌ بِالْأَبِ** او په دې کې د پلار څه نقصان هم نشته **وَفِي عَكْسِهِ ضَرَرٌ بِالصَّغِيرِ** او ددې په عکس کاوه کې د بچی ضرر دي **لِتَخَلُّقِهِ بِأَخْلَاقِ أَهْلِ السَّوَادِ** خکه چې بچې د کلو د خلګو اخلاق ایزده کوی **فَلَيْسَ لَهَا ذَلِكَ** نو ښځې ته داسې اختیار نشته.

**تشریح**:- د ترجمې څخه مطلب واضح دي

## باب النفقة

(دا) باب (د) نفقه (د وجوب په بیان کښې ) دي .

**تشریح**:- نفقه اسم دي.د اتفاق په معنی کې دي.او په اصطلاح کې نفقه د روزمره هغه خوراك دي.چه دا دژوند اوسیدلو لپاره برابر جاری پاتې شی .اود نفقه وجوب په څو سببونو باندې کیږی .من جمله د هغې نه زوجیت دي،نسب دي، ملك دي.د هر یو بیان په ترتیب سره ذکر کیږی .

د نفقه مفهوم✿په مخ کښینی باب کې مصنف رحمه الله د بچی د پرورش حق بیان کړلو.اوهغه نفرئې بیان کړل چا لپاره چې د پرورش حق حاصل وی .ددې نه د فارغیدلو نه روسته اوس په دې باب کې د نفقه احکام،او په کوم کس چې نفقه واجب وی .هغه بیانوی .



### په خاوند باندې د نفقه وجوب

**قَالَ** امام قدوری رحمه الله فرمائی **النَّفَقَةُ وَاجِبَةٌ لِلزَّوْجَةِ عَلَى زَوْجِهَا** چې د ښځې لپاره ددې په خاوند باندې نفقه واجب ده **مُسْلِمَةً كَانَتْ** که دا ښځه مسلمانه وی **أَوْ كَافِرَةً** او که کافره وی **إِذَا سَلَّمَتْ نَفْسَهَا إِلَى مَنْزِلِهِ** خوچه کله دا ښځه خپل ذات د خاوند په کور **فَعَلَيْهِ نَفَقَتُهَا وَكِسْوَتُهَا وَسُكْنَاهَا** نو په خاوند باندې ددې نفقه، لباس، او سکنی واجب ده

**حل اللغة**:① ذوسعة: مالدار② کسوة: جامې ③ الاحتباس: بندول ]

**تشریح**:- مسئله:د ښځې نفقه ددې په خاوند باندې واجب ده.که ښځه مسلمانه وی .او که کتابیه وی .په دې شرط چې دا خپل خان د خاوند کورته اوسپاری .نو په خاوند باندې ددې نفقه، ددې کپړې،او ددې سکونت واجب دي.

**وَالْأَصْلُ فِي ذَلِكَ** اود نفقې په وجوب کې اصل دادې **قَوْلُهُ تَعَالَى** چې الله تعالی فرمائیلی دی {**لِيُنْفِقْ ذُو سَعَةٍ مِنْ سَعَتِهِ**} چې د وسعت والا دې د خپل وسعت مطابق نفقه ورکړی **وَقَوْلُهُ تَعَالَى** اود الله تعالیٰ قول دي {**وَعَلَى الْمَوْلُودِ لَهُ رِزْقُهُنَّ وَكِسْوَتُهُنَّ بِالْمَعْرُوفِ**}چه د بچی په پلار باندې د بچی د مور خوراکه،او کپړه د اعتدال په اندازه واجب دی

**تشریح**:- اود نفقه په وجوب دلیل دادې.چه الله تعالی فرمائیلی دی ((**لِيُنْفِقْ ذُو سَعَةٍ مِنْ سَعَتِهِ**)) په آیت کې امر بالاتفاق دي.او امر دوجوب لپاره راخی .او په دوهم آیت کې ئې حکم اوفرمائیلو. ((**وَعَلَى الْمَوْلُودِ لَهُ رِزْقُهُنَّ وَكِسْوَتُهُنَّ بِالْمَعْرُوفِ**)). په دې آیت کې ،،علی ،، د الزام لپاره دي.

**وَقَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ فِي حَدِيثِ حَجَّةِ الْوَدَاعِ** او نبی کریمﷺ د حجة الوداع په خطبه کې فرمائیلی دی { **وَلَهُنَّ عَلَيْكُمْ رِزْقُهُنَّ وَكِسْوَتُهُنَّ بِالْمَعْرُوفِ**}(١) چې ستاسو او ستاسو ښځو لپاره ددوی خوراك او کپړه د اعتدال په طور واجب دی .

**تشریح**:- د عرفه په ورځ د حجة الوداع په طویله خطبه کې نبی کریمﷺ اوفرمائیل.«فاتقوا الله فی النساء فانهن عوان عندکم اخذتموهن بامانة الله واستحللتم فروجهن بکلمة الله ولکن علیهن ان لایوطئن فرشکم احدا تکرهونه فان فعلن فاضربوهن ضربا غیر مبرح ولهن علیکم رزقهن وکسوتهن بالمعروف» (رواه مسلم) د ښځو په اړه کې د الله نه اویریږئ.خکه چې دوی تاسو سره قید دی .تاسو دوی د الله تعالی په امانت سره اخستې دی .او تاسو ددوی شرمګاهونه د الله له حکم سره حلال کړې دی .اوستاسو لپاره په دوی واجب دی .چه ستاسو بسترې په یو داسې سړی باندې پائمال نکړی .چه تاسو ئې نه خوښوئ.که دوی داسې اوکړل.نو دوی رو اووهئ.او ددوی لپاره په تاسو باندې ددوی خوراك،کپړه، د اعتدال په طریقه واجب دی .

**وَلِأَنَّ النَّفَقَةَ جَزَاءُ الِاحْتِبَاسِ** او خکه چې نفقه د منع کول عوض دي **فَكُلُّ مَنْ كَانَ مَحْبُوسًا بِحَقٍّ مَقْصُودٍ لِغَيْرِهِ** او څوك چې د بل د مقصودی حق په وجه قید وی . **كَانَتْ نَفَقَتُهُ عَلَيْهِ** نو نفقه به هم په هغه وی **أَصْلُهُ الْقَاضِي** د دې اصل قاضی دي **وَالْعَامِلُ فِي الصَّدَقَاتِ** او څوك چې د زکاة لپاره عامل وی **وَهَذِهِ الدَّلَائِلُ لَا فَصْلَ فِيهَا** او په دې دلیلونو کې هیڅ تفصیل نشته **فَتَسْتَوِي فِيهَا الْمُسْلِمَةُ وَالْكَافِرَةُ** لهذا د نفقه په حق کې مسلمانه ښځه او کافره دواړه برابر دی

**تشریح**:- عقلی دلیل دادې.چه نفقه د محبوس کیدلو عوض دي.نوڅوك چې د بل کس د مقصودی حق په وجه محبوس(قید ) شو.نو نفقه به هم په ده باندې واجب وی .نوچونکه ښځه هم د خپل خاوند لپاره محبوسه ده.نود ښځې نفقه به هم په خاوند باندې واجب وی .او ددې اصل قاضی دي.اوکوم کس چې د زکاة لپاره

١) تقدم تخریجه فی الحج فی حدیث جابر الطویل)_

عامل وی .ځکه چې دا دواړه د خپل ذات لپاره هیڅ کار نه کوی .بلکه د مسلمانانو مصالح پوره کوی .نود مسلمانانود عام حق، یعنی د بیت المال نه د کفایت په اندازه ورکول واجب دی .اوهم دا حکم د مفتی ، او د وقف د متولی ،اود وصی د وصیت، اوکافرانو سره د جنګ کونکی مسلمان دې.او چونکه په دې دلائلو کي هیڅ تفصیل نشته.په دې وجه په نفقه کي مسلمانه ښځه او کتابیه واړه برابر دی .

ؒ دلته کي یوسوال کیدای شی .هغه داچه تاسو اوفرمائیل.د محبوس نفقه په ده واجب ده.چه ددې د حق په وجه دا محبوس شوې دې.حالانکه داسې نه ده.ځکه چې د رهن نفقه په راهن باندې واجب ده.حالانکه رهن د مرتهن د حق په وجه محبوس دې؟ ځواب دادې.چه موږ دا منو.چه رهن د مرتهن سره محبوس دې. خودا نه منو.چه داصرف د مرتهن د حق په وجه محبوس دې.بلکه ځنګه چې د مرتهن مقصود حاصلیږی .دغه ډول د راهن مقصود هم حاصلیږی .که دین هلاك شی .نو راهن به د رهن په ذریعه دین ادا کوی .په دې وجه نفقه په مرتهن باندې واجب نه کړې شوه.

## نفقه او ددې مقدار

وَيُعْتَبَرُ فِي ذَلِكَ حَالُهُمَا جَمِيعًا اود نفقې په مقدار کي به د خاوند اود ښځې د دواړو د حال اعتبار کولای شی قَالَ الْعَبْدُ الضَّعِيفُ عبدضعیف( شیخ مصنف رحمه الله) فرمائیلی دی وَهَذَا اخْتِيَارُ الْخَصَّافِ چې دا دخصاف مختار مذهب دې وَعَلَيْهِ الْفَتْوَى اوهم په دې باندې فتوی ده. وَتَفْسِيرُهُ او ددې قول تفسیر دادې: أَنَّهُمَا إِذَا كَانَا مُوسِرَيْنِ چې کله دواړه مالداره وی تَجِبُ نَفَقَةُ الْيَسَارِ نود مالدارئ نفقه به واجب وی وَإِنْ كَانَا مُعْسِرَيْنِ او که دواړه تنګدست وی فَنَفَقَةُ الْإِعْسَارِ نود تنګدستئ( غریبئ) نفقه به واجب وی وَإِنْ كَانَتْ مُعْسِرَةً او که ښځه غریبه وی وَالزَّوْجُ مُوسِرًا او خاوند توانګر وی فَنَفَقَتُهَا دُونَ نَفَقَةِ الْمُوسِرَاتِ وَفَوْقَ نَفَقَةِ الْمُعْسِرَاتِ نود غریبې ښځې نه زیات اود مالداره ښځې نه کمه نفقه به واجب وی

**حل اللغة:** ① **الیسار:** مالدرای ② **الاعسار:** تنګلاسی (غریبی) ③ **الموسرات:** جمع د **موسرة:** مالدره ښځه ④ **المعسرات:** جمع د **معسرة:** غریبه ښځه ⑤ **یتبین:** ښکاره کیږی ⑥ **التقدیر:** اندازه کول ⑦ **المتوسط:** منځنی ⑧ **مدان:** جمع د مد ،یو مد نیم صاع وی او صاع دړئ ته وائی ]

**تشریح:-** په دې عبارت کي مصنف رحمه الله ددې مسئلې وضاحت کوی .چه په نفقه او ددې په مقدار کي به په ښځه خاوند کي د کوم یوکس حال معتبر وی ؟ امام قدوری رحمه الله فرمائی .چه په ښځه خاوند کي به د دواړوحال معتبر وی .صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی .چه د امام خصاف رحمه الله غوره مذهب هم دا دې. او په دې باندې فتوی ده.اود امام خصاف رحمه الله د قول تفسیر دادې.چه په دې کي عقلی طورڅلور قسمونه دی .ځکه چې ښځه او خاوند به دواړه مالداره وی .یا به دواړه غریبانان وی .او یا به خاوند مالداره وی . او ښځه به تنګدسته وی .یا به ددې په عکس وی .یعنی خاوند به غریب وی .او ښځه به مالداره وی .په رومبی ډول کي به د مالدارئ نفقه واجب وی .او په دوهم ډول کي به د غریبئ نفقه واجب وی .او په دریم اوڅلور ډول کي به دښځې لپاره منځنی درجې نفقه واجب وی . یعنی د مالداره ښځو د نفقه نه کمتر ،اود غریبو ښځو د نفقه څخه به زیاته وی .

وَقَالَ الْكَرْخِيُّ رحمه الله او امام کرخی رحمه الله فرمائیلی دی يُعْتَبَرُ حَالُ الزَّوْجِ چې ( صرف) د خاوند د حال اعتبار به کولې شی .وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ رحمه الله اوهم دا د امام شافعی رحمه الله قول دې لِقَوْلِهِ تَعَالَى لِيُنْفِقْ ذُو سَعَةٍ مِنْ سَعَتِهِ ځکه چې دالله تعالی ارشاد دې وَقَفْنِيْل وذِيْعَسنْ مصمِتعَسه

**تشریح:-** امام کرخی رحمه الله فرمائی . چې د خاوند د حال اعتبار به کولې شی .د امام شافعی رحمه الله هم دا قول دې.د امام کرخی رحمه الله دلیل د الله تعالی((ی﴿ لِيُنْفِقْ ذُو سَعَةٍ مِنْ سَعَتِهِ ۖ وَمَنْ قُدِرَ عَلَيْهِ رِزْقُهُ فَلْيُنْفِقْ مِمَّا آتَاهُ اللَّهُ ﴾دې. یعنی



مالداره به د خپل توان مطابق خرچ کوی .او تنګدست به د هغه مال نه خرچ کوی .کوم چې الله تعالی ده ته ورکړې دې.الله تعالی په دواړه حالتونوکي د سړی د حال اعتبار کړې دې.اوده ته ئې د خرچ کولوحکم ورکړې دې.

وَجْهُ الْأَوَّلِ اود قول اول وجه داده قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ لِهِنْدَ امْرَأَةِ أَبِي سُفْيَانَ چې نبی کریم ﷺ د ابوسفیان رضي الله عنه بی بی هنده رضي الله عنها ته اوفرمائیل خُذِي مِنْ مَالِ زَوْجِكِ چې ته د خپلې خاوند د مال نه دومره قدرې اخله مَا يَكْفِيكِ وَوَلَدَكِ بِالْمَعْرُوفِ (۱) چې څومره ستا او ستا د بچو لپاره په اعتدال سره کافی وی .( اعْتَبَرَ حَالَهَا په دې حدیث کي ) نبی کریم ﷺ د ښځې د حال اعتبار کړې دې وَهُوَ الْفِقْهُ اود فقهې ( د پوهې) خبره هم دا ده فَإِنَّ النَّفَقَةَ تَجِبُ بِطَرِيقِ الْكِفَايَةِ ځکه چې نفقه خود کفایت په طور واجبیږی وَالْفَقِيرَةُ او کومه ښځه چې غریبه وی لَا تَفْتَقِرُ إِلَى كِفَايَةِ الْمُوسِرَاتِ دې ته د مالداره ښځو کفالت پکار نه دې فَلَا مَعْنَى لِلزِّيَادَةِ .نود زیاتوالی هیڅ مطلب نشته

**تشریح:-** د امام خصاف د قول وجه هغه حدیث دې.کوم چې امام بخاری رحمه الله روایت کړې دې.حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائی .﴿إن هندا بنت عتبة (إمرأة أبي سفيان) قالت يا رسول الله ﷺ أن أبا سفيان رجل شحيح لا يعطيني ما يكفيني وولدى الا ما أخذت منه وهو لايعلم فقال خذى من مال زوجك يكفيك وولدك بالمعروف﴾ یعنی هنده بنت عتبه (د ابوسفیان ښځې) اووئیل.ایٔ د الله رسوله ﷺ! ابوسفیان ډیر بخیل سړې دې.دې ماله دومره نه راکوی .چه زما او زما د اولاد کفایت اوکړی .مګر داچه زه بغیر وئیلو واخلم؟ نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل.چه ته د خپل خاوند د مال نه دومره قدرې اخله.چه دا تاته اوستا اولاد ته د اعتدال په طور کفایت اوکړی .ددې واقعه نه معلومیږی .چه نبی کریم ﷺ د ښځې د حال اعتبار کړې دې.اود سمجه خبره هم داده.چه د ښځې د حال اعتبار اوکړې شی .ځکه چې نفقه خو دکفایت په طور واجبیږی .اوکومه ښځه چې غریبه وی .دې ته د مالدارې ښځې کفایت پکار نه دې.نود زیاتوالی هیڅ فائده نشته.او ابوسفیان مالداره سړې وو.نوکه د سړی اعتبار کیدلې.نود فراغت د مقدار اخستلو حکم به ئې ورکړې وو.

وَأَمَّا النَّصُّ او پاتې شو د نص حکم فَنَحْنُ نَقُولُ نو موږ ددې د حکم قائل یو بِمُوجَبِ النَّصِّ أَنَّهُ يُخَاطَبُ بِقَدْرِ وُسْعِهِ چې دې ته د خپل توان مطابق اخستلو حکم دې وَالْبَاقِي دَيْنٌ فِي ذِمَّتِهِ او څومره قدرې چې پاته پاتې شی ددې په ذمه به پور وی وَمَعْنَى قَوْلِهِ بِالْمَعْرُوفِ الْوَسَطُ اود الله تعالی قول،، بالمعروف،، معنی منځنی درجه ده. وَهُوَ الْوَاجِبُ اوهم دا واجب ده

**تشریح:-** او پاتې شو نص قرآنی یعنی ((لِيُنْفِقْ ذُو سَعَةٍ مِنْ سَعَتِهِ)) نو ددې ځواب دادې.چه موږ هم ددې دحکم مطابق قائل یو.یعنی په دې آیت کي حکم دادې.چه سړې د خپل وسعت مطابق نفقه ورکړی .او کوم چې پاتې شی .هغه به دده په ذمه قرضه پاتې وی .مثلاً فقیرسړی باندې د مالدارې ښځې روزمره منځنی درجې نفقه اته روپئ ده.او سړی ښځې ته د فقیرئ نفقه روزانه پنځه روپئ ورکولې.نو درې روپئ به په ده باندې قرضه پاتې وی .تردې چې کله دې مالداره شی .نو ادا کوی به ئې.اود الله تعالی د قول ((بِالْمَعْرُوفِ)) نه د اوسط درجه نفقه مراد ده.اوهم دا واجب ده.

وَبِهِ يَتَبَيَّنُ او ددې کلام نه ښکاره شوه أَنَّهُ لَا مَعْنَى لِلتَّقْدِيرِ چې د اندازې مقررولو هیڅ معنی نشته كَمَا ذَهَبَ إِلَيْهِ الشَّافِعِيُّ رحمه الله .لکه چې دې اړخ ته امام شافعی رحمه الله تلې دې أَنَّهُ عَلَى الْمُوسِرِ مُدَّانِ چې د مالداره په ذمه دوې [دوه] مده( نصف صاع) وَعَلَى الْمُعْسِرِ مُدٌّ اود غریب په ذمه څلورمه برخه صاع، یعنی یو مد وَعَلَى الْمُتَوَسِّطِ مُدٌّ وَنِصْفُ مُدٍّ او په منځنی سړی باندې یونیم صاع واجب ده لِأَنَّ مَا وَجَبَ كِفَايَةً ځکه چې کوم څز د کفالت په

(۱) من حديث عائشة رضي الله عنها أخرجه البخاري وابوداود في البيوع ومسلم والنسائي في القضاء وابن ماجه في الأحكام (نصب:۳۹۸\۳)_

طور واجبیږی .لَایَتَقَدَّرُشَرْعًافِی نَفْسِهٖ هغه د خپل ذات په اعتبار سره شرعاً نه مقدر کیږی

**تشریح:-** نبی کریم ﷺ چې هنده (د ابوسفیان ښځې) ته اوفرمائیل چه خذی من مال زوجك ما یکفیك وولدك
ددې نه داخبره معلومه شوه.چه د نفقه هیڅ مقدارمقرر نه دې.لکه څنګه چې د امام شافعی رحمه الله مذهب
دې.چه د مالداره په ذمه روزانه دوې [دوه] مده، یعنی نصف صاع ده.اود غریب په ذمه یو مد، یعنی د صاع
څلورمه برخه واجب ده.اود متوسط په ذمه یونیم مد واجب ده.څکه چې کوم شی د کفایت په طور واجبیږی
.هغه شرعاً په خپل ذات سره په څه خاص اندازه نه متعین کیږی .څکه چې د خلګو حالات مختلف دی .د
بوډاتوب اود ځوانۍ په غذا کې توپیر دې.اود وختونو او ځایونو په اختلاف سره هم د خلګ وحالات بدلیږی
رابدلیږی .نو په مقدار مقررکولوسره کله ضرر هم کیدلې شی .په دې وجه هیڅ مقدار نشی مقرر کیدلې.

## د ښځې نفقې حاصلولو لپاره خپل خاوند منع کول

وَاِنْ امْتَنَعَتْ مِنْ تَسْلِيمِ نَفْسِهَا اوکه ښځې د خپل ذات سپارلو نه انکار اوکړو حَتّٰی یُعْطِیَهَا مَهْرَهَا تردې چې
خاوند دې ته ددې مهر ورکړی فَلَهَا النَّفَقَةُ نود ښځې لپاره نفقه واجب ده

**حل اللغة:** ① تسلیم: سپارل، حواله کول ② الاحتباس: بندول ③ الفائت: فوت کیدونکې]

**تشریح:-** مسئله دا ده.که ښځې خپل ځان خاوند ته د سپارلو نه بند کړلو.تردې چې خاوند ددې مهرمعجل ادا
کړی .نو په دې صورت کې به د ښځې نفقه نه ساقطیږی .بلکه په خاوند به واجب وی .

لِاَنَّهٗ مَنْعٌ بِحَقٍّ څکه چې دا منع کیدل په یوحق سره دی. فَکَانَ فَوْتُ الْاِحْتِبَاسِ لِمَعْنًی نو( د ښځې ) نه قید
کیدل په یو داسې وجه شو مِنْ قِبَلِهٖ کوم چې د خاوند د اړخه پیدا شوې دې. فَیُجْعَلُ کَلَافَائِتٍ نوداسې به
ګڼړلې شی چې قیدکیدل فوت نشو.

**تشریح:-** دلیل دادې.چه د ښځې خپل ځان منع کول، د خپل حق په وجه دی .نود احتباس فوت کیدل، په داسې
وجه دی .چه د خاوند د اړخه پیدا شوې دې.نودا داسې شوه.لکه چې احتباس فوت نشو.او هرکله چې د
ښځې د اړخه احتباس فوت نشو.نو ددې نفقه به هم نه ساقطیږی .

## د نافرمانه اوسرکې ښځې نفقه

وَاِنْ نَشَزَتْ اوکه ښځې نافرمانی او بغاوت اوکړو فَلَانَفَقَةَ لَهَا نو ددې لپاره به نفقه نه وی حَتّٰی تَعُوْدَ اِلٰی مَنْزِلِهٖ
تردې چې دا خپل خاوند کور ته واپس شی لِاَنَّ فَوْتَ الْاِحْتِبَاسِ مِنْهَا څکه چې د قید فوت کیدل د ښځې د
اړخه دی

**حل اللغة:** ① نشزت: د نشوز نه دې یعنی که ښځه د خاوند نافرمانی کوی ② کره: په زور، جبر]

**تشریح:-** مسئله داده.که ښځې نافرمانی او سرکشی اوکړله.نو ددې لپاره به نفقه نه وی .تردې پورې چې دا
سرکشی پریږدی .اود خاوند کور ته واپس راشی .څکه چې دې خپل ځان محبوس کول د خپل ځان نه لرې
کړې دې.یعنی نفقه ددې د احتباس په وجه واجب وه.اوکله چې دې احتباس پخپله ختم کړلو.نو نفقه به هم
ساقط وی .

وَاِنْ عَادَتْ او هرکله چې واپس راغله جَاءَ الْاِحْتِبَاسُ نو احتباس به هم واپس راځی فَتَجِبُ النَّفَقَةُ.نو نفقه به
واجب وی بِخِلَافِ مَا اِذَا امْتَنَعَتْ مِنَ التَّمْکِیْنِ فِیْ بَیْتِ الزَّوْجِ په خلاف د هغه صورت چې ښځې د خپل خاوند په
کور کې ( خپل ځان باندې) قدرت ور کاوه نه منع کړو لِاَنَّ الْاِحْتِبَاسَ قَائِمٌ څکه چې احتباس موجود دی
وَالزَّوْجُ یَقْدِرُ عَلَی الْوَطْیِ کَرْهًا او خاوند په زبردستۍ وطی کاوه باندې قادر دې.

**تشریح:-** کله چې دا واپس د خاوند کور ته راشی .نو بیا به محبوسه شی .نو نفقه به هم بیا واجبه وی . ددې په



خلاف که ښځه د خاوند په کورکې اوسیدله.خو خاوند له نې په وطی قدرت نه ورکولو.نود ښځې نفقه به نه
ساقطیږی .څکه چې احتباس موجود دې.او خاوند ددې سره په زبردستۍ وطی کولې شی.

## د صغیره لپاره نفقه

وَاِنْ کَانَتْ صَغِیْرَةً اوکه صغیره وی لَایُسْتَمْتَعُ بِهَا چې دې سره جماع نشی کیدلې فَلَانَفَقَةَ لَهَا نو ددې لپاره
نفقه نشته. لِاَنَّ امْتِنَاعَ الْاِسْتِمْتَاعِ څکه چې وطی ممتنع کیدل لِمَعْنًی د داسې معنې په وجه دی . فِیْهَا کوم چې
په ښځه کې موجود ده وَالْاِحْتِبَاسُ الْمُوْجِبُ اوکوم احتباس چې نفقه واجبوی مَایَکُوْنُ وَسِیْلَةً اِلٰی مَقْصُوْدٍ مُسْتَحَقٍّ
بِالنِّکَاحِ دا هغه احتباس دې.چه د نکاح د مقصود حاصلولو وسیله وی وَلَمْ یُوْجَدْ اوداسې احتباس اونه
موندې شو بِخِلَافِ الْمَرِیْضَةِ په خلاف د مریضې ښځې عَلٰی مَا نُبَیِّنُ چې موږ به ډیر ژر-ې بیان کړو

**حل اللغة:** ① المجبوب: هغه چې ذکر ئې کټ شوې وی ② العنین: نامرده یعنی چې په جماع کاوه قادر نه وی ]

**تشریح:-** صورت د مسئلې دادې.که ښځه دومره صغیره وی .چه دې سره جماع نشی کیدلې.نو ددې لپاره به
په خاوند باندې نفقه واجب نه وی .که دا د خاوند په کورکې وی .اوکه د خاوند په کور کې نه وی .تردې چې
د جماع قابله شی .هم دا دجمهورعالمانو قول دې.دلیل دادې.چه د جماع ممتنع کیدل په داسې وجه سره دی
.کوم چې په ښځه کې موجود دې.یعنی د صغیره خپل ځان خاوند ته نه سپارل، نو صغیره داسې شوه.لکه
ناشزه (نافرمانه) او کوم احتباس چې نفقه واجبوی .هغه دادې.چه د نکاح د مقصود(جماع یا دواعی د
جماع) حاصلولو وسیله وی .او داسې احتباس موجود نشو.په دې وجه د صغیره لپاره په دې خاوند باندې
نفقه هم واجب نه ده.په خلاف د بیمارې ښځې. چې ددې نفقه نه ساقاطیږی .ددې تفصیل به عنقریب بیان
کړې شی .انساءالله

وَقَالَ الشَّافِعِیُّ رحمه الله او امام شافعی رحمه الله فرمائی لَهَا النَّفَقَةُ چې د صغیره لپاره نفقه واجب ده لِاَنَّهَا عِوَضٌ مِنَ
الْمِلْكِ عِنْدَهٗ څکه چې نفقه د امام شافعی رحمه الله په نیز د خاوند د ملك عوض دې کَمَا فِی الْمَمْلُوْکَةِ بِمِلْكِ الْیَمِیْنِ
لکه د هغه ښځې نفقه چې ددې د ذات مالك دې.

**تشریح:-** امام شافعی رحمه الله فرمائی .چه د صغیره لپاره نفقه واجب ده.دلیل دادې.چه د امام شافعی رحمه الله په نیز
نفقه د خاوند د ملك عوض دې.لکه د هغه ښځې نفقه چې ددې د ذات مالك وی .وجه ددې داده.چه د نفقه د
وجوب سبب حاجت دې.او په حاجت کې صغیر او کبیر واړه برابر دی .

وَلَنَا اَنَّ الْمَهْرَ عِوَضٌ عَنِ الْمِلْكِ او زموږ دلیل دادې.چه ملك معوض خو مهر دې وَلَا یَجْتَمِعُ الْعِوَضَانِ عَنْ مُعَوَّضٍ
وَاحِدٍ اود یو معوض دوې [دوه] عوضونه نه جمع کیږی فَلَهَا الْمَهْرُ نود صغیره ښځې لپاره مهر دې. دُوْنَ النَّفَقَةِ
نفقه نشته

**تشریح:-** زموږ دلیل دادې.چه دملك عوض خومهر دې.څکه چې عوض هغه دې.کوم چې په عقد کې داخل
وی ، مذکور وی .او په عقد کې مهر داخل وی .نفقه داخل نه وی .نو ثابته شوه.چه د ملك عوض مهر دې. او
هرکله چې د ملك عوض مهر دې.نو نفقه عوض نشی کیدلې.څکه چې د یو شی ډیر عوضونه نه جمع کیږی
.نود صغیره لپاره به مهر واجب وی .نفقه به نه وی .

وَاِنْ کَانَ الزَّوْجُ صَغِیْرًا او که خاوند صغیر وی لَایَقْدِرُ عَلَی الْوَطْیِ چې په جماع قادر نه وی وَهِیَ کَبِیْرَةٌ
حال داچه ښځه بالغ ده فَلَهَا النَّفَقَةُ مِنْ مَالِهٖ نو ددې لپاره د خاوند په مال کې نفقه واجب ده لِاَنَّ التَّسْلِیْمَ قَدْ
تَحَقَّقَ مِنْهَا څکه چې د ښځې د اړخه خپل ځان سپارل متحقق شو وَاِنَّمَا الْعَجْزُ مِنْ قِبَلِهٖ او عجز صرف د خاوند د
اړخه دې فَصَارَ کَالْمَجْبُوْبِ وَالْعِنِّیْنِ نود مقطوع الذکر اود عنین پشان شو

**تشریح:-** که خاوند نابالغه وی .په جماع قدرت نشی لرلې.او دده ښځه بالغه وی .نود خاوند د مال نه ددې لپاره نفقه واجب ده.ځکه چې د ښځې د اړخه خپل ځان سپارل موجود شو.او عجز صرف د خاوند د اړخه دې.نو لکه څنګه چې د مقطوع الذکر اود نامرد د ښځې نفقه واجب وی .دغه ډول به ددې نابالغ د ښځې نفقه هم واجب وی .او که ښځه خاوند دواړه نابالغ وی .چه په جماع قادر نه وی .نو په اجماع سره به دښځې نفقه واجب نه وی .(الذخیره)

## په پور کې د قیدې ښځې نفقه

وَإِذَا حُبِسَتِ الْمَرْأَةُ فِي دَيْنٍ اوکه ښځه د دین په وجه قید کړې شوه فَلَا نَفَقَةَ لَهَا نوددې لپاره به نفقه( واجب ) نه وی لِأَنَّ فَوْتَ الِاحْتِبَاسِ مِنْهَا ځکه چې د احتباس زائل کیدل د ښځې د اړخه اوموندې شو بِالْمُمَاطَلَةِ چې دې ( په پور اداکولو کې ) ټال مواړه کړې دې وَإِنْ لَمْ يَكُنْ مِنْهَا اوکه د ښځې د اړخه نه وی بِأَنْ كَانَتْ عَاجِزَةً په دې طریقه وی .چه ښځه د پور اداکولونه عاجزه وی فَلَيْسَ مِنْهُ.نو بیا هم د خاوند د اړخه نه دې

**حل اللغة:** ① المماطلة: ټال مواړه کول ،سره د قدرت نه پور نه ادا کول ② الاحتباس: بندول]

**تشریح:-** صورت د مسئلې دادې.که ښځه د پور او دین په وجه قیدی شوه.نو ددې لپاره به نفقه واجب نه وی .دلیل دادې.چه په دې صورت کې احتباس زائل کیدل د ښځې د اړخه متحقق شوې دې.ځکه چې ده په پور اداکولو کې ټال مواړه کړې دې.چه ددې په وجه دا قیدی شوه.نودا داسې شوه.لکه چې دې خپل ځان خاوند ته د سپارلو نه منع کړلو.او کومه ښځه چې بلاوجه خپل ځان خاوند ته نه حواله کوی .هغه ناشزه (نافرمانه) وی .اوچونکه د ناشزه نفقه ساقطیږی .په دې وجه به ددې ښځې نفقه هم ساقطیږی .اوکه احتباس زائل کول د ښځې د اړخه نه وی .په دې طریقه چې دا د قرضې ادا کاوه نه عاجزه وی .بیا هم د خاوند د اړخه نه دې.نود خاوند څخه به د نفقه مطالبه نشی کولې.

وَكَذَا نو بیا هم دغه حکم دې إِذَا غَصَبَهَا رَجُلٌ كُرْهًا اوکه ښځه یوسړی په زبردستۍ سره غصب کړه فَذَهَبَ بِهَا او وې تختوله وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ اود ابویوسف رحمه الله نه روایت دې أَنَّ لَهَا النَّفَقَةَ چې د مغصوبه ښځې لپاره به نفقه وی .وَالْفَتْوَى عَلَى الْأَوَّلِ او فتوی په اولنی قول ده لِأَنَّ فَوْتَ الِاحْتِبَاسِ لَيْسَ مِنْهُ ځکه چې احتباس زائل کول د خاوند د اړخه نه دی لِيُجْعَلَ بَاقِيًا تَقْدِيرًا چې حکماً پاته اوګرخولې شی

**تشریح:-** که سړی په زبردستۍ سره ښځه غصب کړی .او بوتې څی .نو بیاهم دا حکم دې.چه دې لپاره به نفقه نه وی .دا ظاهرالروایت دې.اود امام ابویوسف رحمه الله نه په نوادرکې روایت دې.چه دمغصوبه ښځې لپاره په خاوند باندې نفقه واجب ده.د امام ابویوسف رحمه الله دلیل دادې.چه د غصب په صورت کې د ښځې د اړخه خپل ځان بندول موجود نشو.خو فتوی په اولنی قول ( یعنی په ظاهرالروایت) باندې ده.ځکه چې احتباس زائل کول،د خاوند د اړخه نه دی .چه اوونیلی شی .چه احتباس حکماً پاته دې.حاصل داچه د ښځې نفقه ددې خبرې عوض دې.چه ښځه خپل ځان د خاوند په کورکې محبوس کړی .نوکه احتباس زائل کول، د خاوند د اړخه نه وی .نو احتباس حکماً هم نشی ګرځولې. او چونکه بغیر د احتباس نه د ښځې لپاره نفقه واجب نه وی .په دې وجه به په دې صورت کې نفقه نه وی .

وَكَذَا إِذَا حَجَّتْ مَعَ مَحْرَمٍ او هم دغه ډول که ښځې خپل محرم سره حج اوکړو لِأَنَّ فَوْتَ الِاحْتِبَاسِ مِنْهَا ځکه چې احتباس زائل کول د ښځې د اړخه دی وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رحمه الله او د ابویوسف رحمه الله نه روایت دې.أَنَّ لَهَا النَّفَقَةَ چې ددې ښځې لپاره به نفقه واجب وی لِأَنَّ إِقَامَةَ الْفَرْضِ عُذْرٌ ځکه چې فرض اداکول یو عذردې وَلَكِنْ تَجِبُ عَلَيْهِ نَفَقَةُ الْحَضَرِ خو په خاوند به د حضر نفقه اداکول واجب وی دُونَ السَّفَرِ نه د سفر لِأَنَّهَا هِيَ الْمُسْتَحَقَّةُ عَلَيْهِ ځکه چې د حضر نفقه په خاوند باندې واجب شوې ده



**تشریح:-** که ښځې د خاوند نه بغیر خپل محرم سره حج اوکړلو.نو بیا به هم ددې لپاره نفقه واجب نه وی .ځکه چې په دې صورت کې احتباس زائل کول د ښځې د اړخه دی .اود امام ابویوسف رحمه الله نه نقل دی .چه د ښځې لپاره به په دې صورت کې نفقه واجب وی .ځکه چې د حج فریضه اداکول، یوعذر دې.خودا خبره دې ښکاره وی .چه په دې صورت کې په خاوند باندې د حضر نفقه واجب ده.د سفر نفقه واجب نه ده. یعنی په حضر(اقامت) کې چې په خوراك باندې کومه خرچه راځی .په خاوند به هغه واجب وی .ځکه چې په سفرکې د نفقه خرچې زیاتې وی .په نسبت د حضر د نفقې.

او ددې دلیل دادې.چه په خاوند باندې دحضر نفقه واجب شوې ده.ځکه چې په آیت او روایت دواړو کې ددې نفقې حکم ورکړې شوې دې.چه دا د ،، مَعْرُوف،، په قید سره مقید دې.اود معروف نه مراد دا دی چه نه په دې کې اسراف وی .او نه تنګی وی .او چونکه په سفرکې هرڅیز په ګران قیمت کې ملاویږی .په دې وجه د سفر په نفقه کې اسراف دې.نود سفر نفقه معروف ( د اعتدال په طور) نه ده.او هرکله چې معروف نه ده.نو واجب به هم نه وی .

وَلَوْ سَافَرَ مَعَهَا الزَّوْجُ اوکه ښځې سره خاوند هم سفر اوکړو تَجِبُ النَّفَقَةُ بِالِاتِّفَاقِ نو بالاتفاق به نفقه واجب وی لِأَنَّ الِاحْتِبَاسَ قَائِمٌ ځکه چې احتباس موجود دې.لِقِيَامِهِ عَلَيْهَا ځکه چې خاوند دددې سره موجود دې وَتَجِبُ نَفَقَةُ الْحَضَرِ دُونَ السَّفَرِ( خو) د حضر نفقه به واجب وی . د سفربه ( واجب) نه وی وَلَا يَجِبُ الْكِرَاءُ لِمَا قُلْنَا او کرایه به هم واجب نه وی .د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ بیان کړې دې.

**تشریح:-** که دښځې سره خاوند هم سفر اوکړلو.نو بالاتفاق به دښځې لپاره نفقه واجب وی .ځکه چې په ښځه باندې د خاوند د قیام په وجه احتباس هم موجود دې.خود حضر نفقه به واجب وی .د سفر به واجب نه وی . اود ښځې کرایه به هم واجب نه وی .دلیل وړاندې تیرشوې دې.چه په خاوند باندې د حضر نفقه واجب وی .

## د بیمارې ښځې نفقه

فَإِنْ مَرِضَتْ فِي مَنْزِلِ الزَّوْجِ اوکه د خپل خاوند په کورکې ښځه بیماره شوه فَلَهَا النَّفَقَةُ[1] نو ددې لپاره به نفقه واجب وی وَالْقِيَاسُ أَنْ لَا نَفَقَةَ لَهَا او قیاس دا دې چې د ښځې لپاره نفقه واجب نه وی إِذَا كَانَ مَرَضًا چې داسې مرض وی يَمْنَعُ مِنَ الْجِمَاعِ چې د جماع نه مانع وی لِفَوْتِ الِاحْتِبَاسِ لِلِاسْتِمْتَاعِ ځکه چې د جماع لپاره احتباس فوت شو

**حل اللغة:** ① الاستمتاع: فائده اخستل ② التسليم: سپارل ③ يستانس: مانوسه کیږی ،]

**تشریح:-** مسئله داده.چه ښځه د خاوند په کورکې اوسیدله.اوبیماره شوه.نو ددې لپاره نفقه واجب ده. ناروغی (بیماری )) که د جماع نه مانع وه.او که نه وه.اود قیاس تقاضا داده.که ناروغی (ناروغی (بیماری )) د جماع مانع وی . نود ښځې لپاره نفقه واجب نه وی .ځکه چې د جماع لپاره کوم احتباس وو.د بیمارۍ په وجه هغه فوت شو.او چونکه نفقه د احتباس عوض دې.په دې وجه د احتباس فوت کیدلو په وجه به نفقه هم ساقطیږی .

وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ اود استحسان وجه داده أَنَّ الِاحْتِبَاسَ قَائِمٌ چې احتباس موجود دې فَإِنَّهُ يَسْتَأْنِسُ بِهَا ځکه چې خاوند به ددې سره مینه کوی وَيَمَسُّهَا او دې ته به لاس اوړی وَتَحْفَظُ الْبَيْتَ اودا دده د کور ساتنه کوی وَالْمَانِعُ بِعَارِضٍ اومانع د وطی دڅه عارض په وجه دې فَأَشْبَهَ الْحَيْضَ نودا ناروغی (بیماری )) د

[1] القول الراجح هو ظاهرالرواية كذا فی ردالمحتار(٢\٧٠١) والبحرالرائق (٤\١٨٣) ومجمع الأنهر(١\٤٩٨) والهندية (١\٥٤٦) نقلاً عن القول الراجح (١\٣٨١)-

حيض مشابه شوه

تشریح:- د استحسان وجه داده.چه احتباس اوس هم موجوږ دي.ځکه چي خاوند د بيمارۍ ښځي سره خوشحاله وي .او ددې په ښکلولو سره مزه اخلي .اود کور ساتنه کوي .اود وطي مانع د عارض په وجه دې. نو دا ناروغي (ناروغي (بيماري )) د حيض مشابه شوه.چه لکه څنګه حيض د وطي مانع وي .خو د حيض په موده کي د ښځي لپاره نفقه واجب وي .دغه ناروغي (ناروغي (بيماري )) اګرچه د وطي مانع ده.خود بيمارۍ په زمانه کي به دښځي لپاره نفقه واجب وي .

وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رحمه الله اود ابويوسف رحمه الله نه روايت دي أَنَّهَا إِذَا سَلَّمَتْ نَفْسَهَا چي ښځي کله خپل ځان اوسپارلو ثُمَّ مَرِضَتْ بيا بيماره شوه تَجِبُ النَّفَقَةُ نو نفقه به واجب پاتي وي لِتَحَقُّقِ التَّسْلِيمِ ځکه چي سپارل متحقق شو وَلَوْ مَرِضَتْ ثُمَّ سَلَّمَتْ اوکه بيماره شوه. بيا ئې خپل ځان اوسپارلو لَا تَجِبُ لِأَنَّ التَّسْلِيمَ نو نفقه به واجب نه وي لَمْ يَصِحَّ ځکه چي سپارل صحيح نشو قَالُوا ( زموږ مشائخ) فرمائي .هَذَا حَسَنٌ چي دا قول ښه ( مناسب) دي وَفِي لَفْظِ الْكِتَابِ او په کتاب کي هم داسي لفظ موجود دي مَا يُشِيرُ إِلَيْهِ چي دې اړخ ته اشاره کوي .

تشریح:- د امام ابويوسف رحمه الله نه روايت دي.که ښځي وړاندي نه خپل ځان د خاوند حواله کړې وي .نو ددې لپاره به نفقه واجب وي .او که وړاندي بيماره شوې وي .او بيا ئې ځان سپارلې وي .نو نفقه به واجب نه وي .وجه د توپير داده.چه په ړومبۍ صورت کي دښځي د اړخه خپل ځان سپارل موجودشو.او په دوهم صورت کي د مرض په وجه سپارل صحيح نشو.او زموږ مشائخ وائي . چي دا تفصيل مناسب دي.اود قدوري عبارت هم دې اړخ ته اشاره کوي .

## د ښځي او ددې د نوکر نفقه

قَالَ قدوري رحمه الله فرمائي وَيُفْرَضُ عَلَى الزَّوْجِ النَّفَقَةُ إِذَا كَانَ مُوسِرًا چي فرض کولي به شي نفقه په خاوند باندي چي کله دې توانګر وي وَنَفَقَةُ خَادِمِهَا ( نفقه د ښځي ) او نفقه د خادم ددې وَالْمُرَادُ بِهَذَا بَيَانُ نَفَقَةِ الْخَادِمِ او مراد ددې نه د خادم د نفقي بيان دي وَلِهَذَا ذُكِرَ فِي بَعْضِ النُّسَخِ او هم په دې وجه بعضونسخوکي ذکر دي وَتُفْرَضُ عَلَى الزَّوْجِ إِذَا كَانَ مُوسِرًا نَفَقَةُ خَادِمِهَا يعنی کله چي خاوند توانګر وي نوپه ده به دده د ښځي د خادم نفقه فرض کولای شي

تشریح:- مسئله داده.که خاوند مالداره وي .نو په ده به دده د ښځي اود ښځي د خادم (نوکر) نفقه هم واجب وي .په ښکاره دا عبارت د ښځي د نفقه په اړه مکرر دي. په دې وجه مصنف رحمه الله عذر اوکړلو. او وې فرمائيل.چه دلته کي د ښځي د خادم نفقه بيانول مقصود دی .د ښځي نفقه بيانول مقصود نه دی .په دې وجه د قدوري په بعضو نسخوکي عبارت داسي دي.﴿ وتفوض على الزوج اذا كان موسراً نفقة خادمها﴾

وَوَجْهُهُ او ددې وجه داده أَنَّ كِفَايَتَهَا وَاجِبَةٌ عَلَيْهِ چي په خاوند باندي د ښځي کفايت واجب دي. وَهَذَا مِنْ تَمَامِهَا اود خادم نفقه د ښځي په کفايت پوره کولوکي دي إِذْ لَا بُدَّ لَهَا مِنْهُ ځکه چي د ښځي لپاره خادم ساتل ضروری دی .

تشریح:- د خادم د نفقه دوجوب وجه داده.چه په خاوند باندي د ښځي کفايت(کافی کيدل) واجب دی .او دښځي پوره کفايت به داوی .چه د ښځي د خادم نفقه هم ضروری کړې شي .په دې وجه دښځي لپاره ددې د خادم نفقه هم واجب ده.خادم که غلام وي .او که وينځه وي .پاتي شوه داخبره چي د ښځي که خادم نه وي .نودا به پخپله کار کاوه باندي مجبوروليي شی .او که نه؟ نو ددې حکم دادي.که ښځه د کار کاوه نه انکار اوکړي . نودا به په دې باندي مجبوروليي شی .ځکه چي په ښځه باندي صرف خاوند له په خپل ځان باندي قدرت واجب دی .دا کارونه واجب نه دی .ددې په خلاف که خادم د خدمت نه انکار اوکړلو.نودې به د نفقه



مستحق نه وي .

## د ښځي د يو نه د زياتو نوکرانو نفقه

وَلَا يُفْرَضُ لِأَكْثَرَ مِنْ نَفَقَةِ خَادِمٍ وَاحِدٍ اود يوخادم نه د زيات نفقه به نشي فرض کولي وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ رحمهما الله .اودا دامام ابوحنيفه اود امام محمد رحمهما الله په نيز دی

تشریح:- مسئله داده.چه په خاوند باندي د ښځي د يوخادم نه د زياتو نفقه واجب نه ده.داحکم د طرفينو رحمهما الله په نيز دي.اوهم دا قول د جمهورو عالمانو،اود امام مالك،امام شافعي اود امام احمد رحمهم الله دي.

وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ رحمه الله .او امام ابويوسف رحمه الله فرمائي . تُفْرَضُ لِخَادِمَيْنِ (١) چي د دوې [دوه] خادمانو نفقه به فرض کولای شي لِأَنَّهَا تَحْتَاجُ ځکه ښځي ته اړتيا دې: إِلَى أَحَدِهِمَا لِمَصَالِحِ الدَّاخِلِ چي په دوی کي يو په کورکي دننه ضروريات پوره کړي وَإِلَى الْآخَرِ لِمَصَالِحِ الْخَارِجِ او دوهم د کور نه بهر (کارونه پوره کړي )

تشریح:- امام ابويوسف رحمه الله فرمائي .چه په خاوند باندي د دوې [دوه] خادمانو نفقه فرض ده.د امام ابويوسف رحمه الله دليل دادي.چه د دوې [دوه] خادمانو اړتيا وي .ځکه چي يوخادم به په کور کي دننه کار کوي .او دوهم به د کورنه د بهر کار کوي .اود امام ابويوسف رحمه الله نه دوهم روايت دي.که ښځه ډيره مالداره وي .چه ددې سره په جهيزکي ډيرې خادماني راغليي وي .نود ټولوخادمانو نفقه به واجب وي .هم دا هشام د امام محمد رحمه الله نه روايت کړې دي.اوهم دا امام طحاوي رحمه الله اختيارکړې دي.

وَلَهُمَا اودطرفينو رحمهما الله دليل دادي أَنَّ الْوَاحِدَ يَقُومُ بِالْأَمْرَيْنِ چي يو خادم دواړه کارونه پوره کولای شي فَلَا ضَرُورَةَ إِلَى الِاثْنَيْنِ نو د دوې [دوه] سرو هيڅ اړتيا نشته وَلِأَنَّهُ لَوْ تَوَلَّى كِفَايَتَهَا بِنَفْسِهِ او ځکه که خاوند پخپله د خپلي ښځي کفايت اوکړي كَانَ كَافِيًا نو کافي کيږي فَكَذَا إِذَا أَقَامَ الْوَاحِدَ مَقَامَ نَفْسِهِ .نو هم دغه شان چي کله ده د خپل ځان په ځائي يو سړې مقررکړو نو بياهم کافي ده

تشریح:- د طرفينو رحمهما الله دليل دادي.چه يوخادم په کور کي دننه اود بهر واړه کار پوره کولي شي .نود دوې [دوه] خادمانو هيڅ اړتيا نشته. دوهم دليل دادي.که خاوند پخپله د ښځي دکارونو خيال اوساتي .نو کافي کيږي .هم دغه ډول که خاوند د خپل ځان په ځائي يوکس مقررکړي .نوهم کافي ده.

وَقَالُوا او مشائخ فرمائي .إِنَّ الزَّوْجَ الْمُوسِرَ يَلْزَمُهُ مِنْ نَفَقَةِ الْخَادِمِ چي مالداره خاوند ته ( دښځي ) دخادم په نفقه کي هم دومره ورکول لازمي دی مَا يَلْزَمُ الْمُعْسِرَ مِنْ نَفَقَةِ امْرَأَتِهِ څومره چي په غريب (خاوند) د خپلي ښځي په نفقه کي لازميږي وَهُوَ أَدْنَى الْكِفَايَةِ او هغه ادنی درجي کفالت دي

تشریح:- بيا مشائخ رحمهم الله فرمائي .چه مالداره خاوند له د ښځي د خادم په نفقه کي هم په دومره اندازه ورکول پکار دی .څومره قدرې چي غريب خاوند لپاره دخپلي ښځي په نفقه کي لازم وي .يعنی ادنی ، ګنی کافي ورکول به پکار وي .حاصل داچه په غريب خاوند باندي د ښځي په نفقه کي چي کوم مقدار واجب وي .د خادم په نفقه کي هم دومره مقدار واجب دي.[؟]

دلته کي د توانګر خاوند نه مراد دادي.چه دده سره دومره مال وي .چه په دې سره په ده باندي صدقه حرام وي .د دومره مال کيدل ضروری نه دی .چه په دې سره په ده باندي زكاة واجب وي .د ښځي اود خادم په نفقه کي اګرچه توپير دادي.خو په ډوډئ کي به توپير نشی کولي. بلکه په سالن کي (ترکاری ) به توپير کولي شی .او په سالن کي اعلی درجه دغوښي ده.او منځنی درجه د زيتون د تيلو ده.او ادنی درجه د مالګي اود پيو

(١) القول الراجح هو قول أبي يوسف رحمه الله كذا في فتح القدير (٤\٢٠١) وردالمحتار(٢\٧١٢) والبحرالرائق (٤\١٨٣) نقلاً عن القول الراجح (١\٣٨٢)_

ده.

وَقَوْلُهُ فِي الْكِتَابِ اوکوم چې قدوری رحمه الله په کتاب کې فرمائیلي دی إِذَا كَانَ مُوسِرًا چې د خادم نفقه به هغه وخت لازم وی .چه کله خاوند توانګر وی إِشَارَةٌ نو اشاره ده إِلَى أَنَّهُ لَا تَجِبُ نَفَقَةُ الْخَادِمِ عِنْدَ إِعْسَارِهِ که خاوند غریب وی .(نو په ده به) نفقه د خادم نه واجبیږی وَهُوَ رِوَايَةُ الْحَسَنِ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله اودا د امام ابوحنیفه رحمه الله د حسن رحمه الله روایت دې وَهُوَ الْأَصَحُّ او هم دا صحیح دې خِلَافًا لِمَا قَالَهُ مُحَمَّدٌ رحمه الله په خلاف د امام محمد رحمه الله د قول لِأَنَّ الْوَاجِبَ عَلَى الْمُعْسِرِ أَدْنَى الْكِفَايَةِ ځکه چې په غریب باندې د ادنی درجې کفالت واجب دې وَهِيَ قَدْ تَكْتَفِي بِخِدْمَةِ نَفْسِهَا او ښځه کله پخپله د خپلو کارونو کفایت کوی .

تشریح:- امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل.چه «اذا کان مؤسرا» په دې سره دې اړخ ته اشاره ده.که خاوند غریب وی .نوپه ده به د خادم نفقه واجب نه وی .حسن بن زیاد رحمه الله هم دا روایت د امام ابوحنیفه رحمه الله نه نقل کړې دې.اوهم دا روایت زیات صحیح دې.اود امام محمد رحمه الله قول دادې.که خاوند غریب وی .او دده ښځې خادم وی .نو ددې خادم نفقه به په خاوند باندې واجب وی .او که ددې سره خادم نه وی .نو په خاوند به د خادم نفقه فرض نه وی .او حسن بن زیاد رحمه الله چې کوم روایت کړې دې.ددې دلیل دادې.چه په غریب باندې د ادنی درجه کفایت واجب دې.اوښځه کله کله پخپله د خپلوکارونو کفایت کوی .په دې وجه په غریب خاوند باندې د ښځې د خادم نفقه فرض نه ده.

## خاوند د نفقه نه عاجزه کیدل

أُعْسِرَ بِنَفَقَةِ امْرَأَتِهِ او کوم خاوند چې د خپلې ښځې د نفقې نه غریب شو لَمْ يُفَرَّقْ بَيْنَهُمَا نو په دې دواړوکي به جدائی نشی کولې. وَيُقَالُ لَهَا (بلکه) قاضی به دې ښځې ته وائی اسْتَدِينِي عَلَيْهِ چې دخپل خاوند (په ذمه) باندې پور واخله

حل اللغة* ① اعسر:غریب شو ② مناب:قائم مقام ③ التفریق: جلا کول ④ التناسل: نسل پیدا کول ⑤ الاستدانة: پور اخستل ]

تشریح:- مسئله داده.که خاوند د خپلې ښځې د نفقه نه عاجزه شو.نو په دې وجه به په دواړوکي تفریق نشي کولې.بلکه قاضی به ښځې ته وائی .چه د خپل خاوند په ذمه باندې پور واخله.یعنی په دې شرط د خوراك سامان پور واخله.چه ددې قیمت به ددې خاوند اداکوی .یاد خاوند په مالداره کیدلو باندې به دده د مال نه دا قرضه اداکولې شی .امام زهری ، عطاء، بن یسار،حسن بصری ، سفیان ثوری ، ابن ابی لیلی ، ابن شبرمه، او حماد بن سلمیان رحمهم الله هم ددې قائل دی .

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رحمه الله .او امام شافعی رحمه الله فرمائی يُفَرَّقُ چې په دواړو کې به تفریق کولای شی لِأَنَّهُ عَجَزَ عَنِ الْإِمْسَاكِ بِالْمَعْرُوفِ ځکه چې خاوند (ددې) د رواج مطابق خپل خان سره د ساتلو نه عاجز شوې دې فَيَنُوبُ الْقَاضِي مَنَابَهُ فِي التَّفْرِيقِ نو قاضی به په جلا کاوه کې دده قائم مقام وی كَمَا فِي الْجَبِّ وَالْعُنَّةِ لکه ځنګه چې د مقطوع الذکر اود عنین په صورت کې کیږی بَلْ أَوْلَى بلکه (د نفقه نه دعاجز کیدلو په صورت کې به) په درجه اولی کیږی .لِأَنَّ الْحَاجَةَ إِلَى النَّفَقَةِ أَقْوَى ځکه چې د نفقې اړتیا ډیر زیات دې

تشریح:- حضرت امام شافعی رحمه الله فرمائی .چه په دواړو کې به تفریق کولې شی .امام مالك او امام احمد رحمهما الله ددې قائل دی .هم دا اختلاف هغه وخت دې.چه کله خاوند د ښځې لپاره د کپړې اود اوسیدلو لپاره د کور ور کاوه نه عاجزه شی .اودا تفریق د امام شافعی اود امام احمد رحمهما الله په نیز فسخ د نکاح ده.اود امام مالك رحمه الله په نیز طلاق دې.

ⓐ د دوی دلیل دادې.چه خاوند د نفقه نه ور کاوه په وجه د امساك بالمعروف نه عاجزه شو. نو په خاوند



باندې تسریح بالاحسان (په ښه طریقه پریخودل) لازم شو.او چونکه خاوند د تسریح بالاحسان نه منع شو.ځکه به قاضی په تسریح بالاحسان کې د خاوند قائم مقام وی .اود ښځې او خاوند په مینځ کې به تفریق کوی .لکه مثلاً که ،، مقطوع الذکر،، او ،،نامرد،، سړې خپلې ښځې ته طلاق ورنکړی .او جلا ئې نکړی .نوقاضی به قائم مقام شی .او تفریق به کوی .بلکه د نفقه نه دعاجزه کیدلو په صورت کې به په درجه اولی تفریق کوی .ځکه چې د جماع په نسبت د نفقه اړتیا ډیر قوی دې.ځکه چې د یوې مودې پورې د نفقه منقطع کیدل د هلاکت سبب جوړیږی . خود جماع منقطع کیدل د هلاکت سبب نه جوړیږی . حاصل داچه امام شافعی رحمه الله ،،عاجز عن النفقه،، په ،،مقطوع الذکر،، او ،، نامر،، باندې قیاس کړې دې.د امام شافعی رحمه الله د قول تائید د ابوهریره رضي الله عنه په حدیث سره هم کیږی . «أن النبي ﷺ قال المرأة تقول لزوجها أطعمني او طلقني» نبی کریم ﷺ فرمائی .چه ښځه به خپل خاوند ته اووائی .چه ماله خوراك راکوه.یا طلاق راکړه.[؟]

وَلَنَا او زموږ دلیل دادې أَنَّ حَقَّهُ يَبْطُلُ .چه د خاوند حق باطلیږی وَحَقُّهَا يَتَأَخَّرُ اود ښځې مؤخرکیږی وَالْأَوَّلُ أَقْوَى فِي الضَّرَرِ او ړومبې په ضرر کې ډیر زیات دې وَهَذَا لِأَنَّ النَّفَقَةَ تَصِيرُ دَيْنًا بِفَرْضِ الْقَاضِي اودا ځکه چې نفقه د قاضی په مقررولوسره (د خاوند په ذمه) پور کیږی فَتُسْتَوْفَى الزَّمَانَ الثَّانِي نو ښځه به (د خاوند نه) په راروانه زمانه کې وصول کوی

تشریح:- زموږ دلیل د الله تعالی قول «وَإِنْ كَانَ ذُو عُسْرَةٍ فَنَظِرَةٌ إِلَى مَيْسَرَةٍ» دې.وجه د استدلال دا ده.چه نفقه آخرکار د خاوند په ذمه قرض وی .او خاوند غریب شو.اود قرآن په نص دا حکم دې.چه کله مدیون غریب شی .نو دائن یعنی پور غوښتونکې به ده ته د مالداره کیدلو پورې مهلت ورکوی .نو ثابته شوه.چه د خاوند د غریب کیدلو په وجه به تفریق نشی کولې.بلکه ښځه به ده ته مهلت ورکوی .

ⓐ او عقلی دلیل دادې.که تفریق اوکړې شی .نود خاوند حق به بالکلیه باطل شی .اود ښځې حق داسې دې.چه په دې کې تاخیر کیدلې شی .ځکه چې هرکله قاضی نفقه مقرر کړی .نودا د خاوند په ذمه پور وی .نو ښځه به ئې د خاوند نه په راروانه زمانه کې وصول کوی .اود خاوند حق بالکلیه باطلول په ضررکې ډیر زیات دې.نود اعلی ضرر لرې کاوه لپاره به ادنی ضرر برداشت کولې شی .

وَفَوْتُ الْمَالِ وَهُوَ تَابِعٌ فِي النِّكَاحِ او مال فوت کیدل په داسې حال کې چې مال په نکاح کې تابع دې. لَا يَلْحَقُ بِمَا هُوَ الْمَقْصُودُ وَهُوَ التَّنَاسُلُ نودا به په مقصود اصلی یعنی نسل جاری ساتلو سره نشی یو ځائې کولې

تشریح:- په دې عبارت سره د امام شافعی رحمه الله دقیاس ځواب ورکوی .حاصل د ځواب دادې.چه ،،عاجز عن النفقه،، یعنی مفلس خاوند په مقطوع الذکر او نامرد باندې قیاس کول، قیاس مع الفارق دې.ځکه چې کوم کس د نفقه نه عاجزه وی .هغه صرف د مال نه عاجزه وی .او په نکاح کې مال مقصود اصلی نه وی . بلکه تابع وی .اوکوم کس چې د مقطوع الذکر اود نامرد کیدلو په وجه ښځې سره د جماع نه عاجزه وی .نود نکاح مقصود اصلی یعنی د توالد اوتناسل نه د عاجزه کیدلو په صورت کې تفریق جائز ګرځولې شوې دې.نو په دې سره دا نه لازمیږی .چه کوم شی په نکاح کې تابع وی .یعنی مال، که ددې نه عاجزه شی . نو هم به تفریق جائز نه وی .

وَفَائِدَةُ الْأَمْرِ بِالِاسْتِدَانَةِ مَعَ الْفَرْضِ اود نفقه فرض کاوه سره د پور اخستلو د حکم فائده داده. أَنْ يُمْكِنَهَا إِحَالَةُ الْغَرِيمِ عَلَى الزَّوْجِ چې ښځه (خپل) قرضخواه خپل خاوند باندې حواله کولای شی فَأَمَّا إِذَا كَانَتِ الِاسْتِدَانَةُ بِغَيْرِ أَمْرِ الْقَاضِي البته که پور اخستل د قاضی دحکم نه بغیر وی كَانَتِ الْمُطَالَبَةُ عَلَيْهَا نود قرضخواه مطالبه به په ښځه باندې وی دُونَ الزَّوْجِ په خاوند به نه وی .

تشریح:- پاتې شوه دا خبره چې هرکله قاضی د ښځې لپاره نفقه مقرر کړله.نودې ښځې لره پور اخستلو اجازت ور کاوه کې څه فائده ده.ځکه چې د قاضی په مقررکولوسره نفقه د خاوند په ذمه پور شوله؟ ځوابد قاضی

د نفقه مقرر کاوه باوجود د قرضه اخستلو اجازت ورکولوکي دا فائده ده.چه ښځه خپل پور غوښتونکې خپل خاوند باندې حواله کولې شي .او که ښځې د قاضي د حکم نه بغیرقرضه واخسته.نو پور غوښتونکې صرف د ښځې نه مطالبه کولې شي .د خاوند څخه به د مطالبه کولوحق نه وي .

## په غریبۍ او مالدارۍ کې د نفقه کیفیت

وَإِذَاقَضَى الْقَاضِي لَهَابِنَفَقَةِ الْإِعْسَارِ اوکه قاضي د ښځې لپاره د غریبۍ نفقه مقرر کړله.بیا ثُمَّ أَيْسَرَ ددې خاوند مالداره شو فَخَاصَمَتْهُ نو ښځې ددې سره مخاصمت اوکړو تَمَّمَ لَهَانَفَقَةَ الْمُوسِرِنو قاضي به ددې لپاره د مالدارۍ نفقه پوره کوي

تشریح:- مسئله داده.که قاضي د یوې ښځې لپاره په خپل خان باندې د غریبۍ او فقیرۍ نفقه فرض کړله.بیا ددې خاوند مالداره شو.نو ښځې قاضي ته د مالدارۍ د نفقه دعوه اوړاندې کړله.نو قاضي به ددې لپاره (دمالدارۍ) نفقه مقرر کوي .

لِأَنَّ النَّفَقَةَ تَخْتَلِفُ بِحَسَبِ الْيَسَارِوَالْإِعْسَارِ ځکه چې د مالدارۍ او غریبۍ موافق نفقه هم مختلف کیږي

تشریح:- دلیل دادې.چه د مالدارۍ اوغریبۍ موافق نفقه بدلیږي رابدلیږي .ځکه چې نفقه د واړه عمر لپاره په یوځل نه واجبیږي .بلکه روزانه په لږه لږه واجبیږي .په دې وجه به روزانه د ښځې د خاوند اود ښځې د حال اعتبارکولې شي .

وَمَاقَضَى بِهِ او قاضي چې کوم حکم ورکړو تَقْدِيرٌلِنَفَقَةٍ دا داسې نفقې لپاره اندازه ده. لَمْ تَجِبْ کومه چې لاتراوسه واجب شوې نه ده. فَإِذَاتَبَدَّلَ حَالُهُ نو کله چې د خاوند حال بدل شو فَلَهَاالْمُطَالَبَةُ بِتَمَامِ حَقِّهَا نود ښځې لپاره د خپل پوره حق غوښتلو اختیار دې.

تشریح:- په دې عبارت سره د یوسوال ځواب ورکوي .سوال دادې.که د ښځې لپاره ئې د غریبۍ نفقه مقرر کړله.بیا خاوند مالداره شو.نود ښځې لپاره د مالدارۍ نفقه پوره کول نه دي پکار.ځکه چې په داسې کاوه سره د قاضي اوله فیصله باطلیږي ؟ ځواب دادې.چه قاضي کوم حکم ورکړې دې.داد داسې نفقه لپاره اندازه ده.کومه چې د اوسه پورې واجب نه وه.ځکه چې د هرې ورځې نفقه په لږه لږه واجبیږي .اوکوم شی چې اوسه پورې واجب نه دې.د هغې اندازه کول هم لازم نه دی .ځکه ممکن ده.چه ددې د وجوب نه وړاندې سبب(کوم چې واجبونکې دې) بدل شي .نو هرکله چې د قاضي مقرر شوې اندازه لازم نشوه.نو دده فیصله به هم مستحکم او مضبوطه نه وي .او هرکله چې د قاضي فیصله مستحکم نشوه.نو ددې باطلول هم لازم نشو.او هرکله چې د خاوند حال بدل شو.نوښځه د خپل حق مطالبه کولې شي .

## د تېرشوي وخت نه ادا شوي نفقې حکم

وَإِذَامَضَتْ مُدَّةٌ اوکه یوه موده تیره شوه لَمْ يُنْفِقِ الزَّوْجُ عَلَيْهَا چې خاوند ښځې ته نفقه نه ده ورکړې وَطَالَبَتْهُ بِذٰلِكَ بیا ښځې ددې نه دتیرې شوې نفقې مطالبه اوکړله فَلَاشَيْءَ لَهَا نود ښځې لپاره به هیڅ نه وي إِلَّا أَنْ يَكُونَ الْقَاضِي فَرَضَ لَهَا النَّفَقَةَ مګردا چې قاضي ددې لپاره د نفقې ( څه مقدار) فرض کړې وي أَوْ صَالَحَتِ الزَّوْجَ عَلٰى مِقْدَارِفِيهَا یا دې خپل خاوند سره په څه مقدار باندې صلح کړې وي فَيَقْضِي لَهَابِنَفَقَةِ مَا مَضٰى نو( هم په دې حساب) قاضي ددې لپاره د تیرې شوې نفقې حکم ورکولې شي

حل اللغة:① صلة: ډالۍ،عطیه ② یستحکم: مضبوطیږي ]

تشریح:- مسئله داده.که یوه موده تیره شوه.او خاوند خپلې ښځې ته نفقه ورنکړه.بیا دې ښځې د خپل خاوند نه ددې مودې د نفقه مطالبه اوکړله.نو زموږ په نیز به ښځې ته هیڅ نه ملاویږي .ځکه چې د وخت تیریدلو په وجه نفقه د خاوند په ذمه نه پور کیږي .او هرکله چې د تیرې شوې مودې نفقه د خاوند په ذمه پور



نشو.نوقاضي د تیرې شوې نفقې حکم هم نشي ورکولې.خو دوې [دوه] صورتونه ددې حکم نه مستثنی دی .یودا چې قاضي د ښځې لپاره د نفقه څه مقدار مقررکړی وي . دوهم داچه ښځې خپل خاوند سره د نفقې په څه مقدار باندې صلح کړې وي .په دې دواړو صورتونوکې به قاضي هم په دې حساب سره دښځې لپاره د تیرې شوې نفقې حکم ورکوي .

لِأَنَّ النَّفَقَةَ صِلَةٌ ځکه چې نفقه عطیه ده وَلَيْسَتْ بِعِوَضٍ عِنْدَنَا او زموږ په نیز( د ملك) عوض نه دې عَلٰى مَامَرَّ مِنْ قَبْلُ لکه چې وړاندې بیان شو فَلَايَسْتَحْكِمُ الْوُجُوبُ فِيهَا كَالْهِبَةِ نوپه نفقه کې وجوب نه مستحکم کیږي إِلَّابِالْقَضَاءِ خوچه کله د قاضي حکم اوشي لَاتُوجِبُ الْمِلْكَ لکه ځنګه چې هبه ملك نه واجبوي إِلَّابِمُؤَكِّدٍ وَهُوَ الْقَبْضُ خو چې مضبوطونکې شی یعني قبضه موجود شي

تشریح:- دلیل دادې.چه نفقه عطیه ده.او زموږ په نیز دملك عوض نه وي .لکه چې وړاندې تیرشوی دی .نود نفقه وجوب مستحکم او مضبوط نشو.خوچه کله د قاضي حکم اوشي .لکه د هبه په صورت کې د ،،موهوب له،، لپاره ملك هغه وخت ثابتیږي .چه کله مضبوطونکې شی یعني قبضه موجود شي .دغه ډول د نفقه وجوب د قاضي په حکم سره مستحکم او مضبوطیږي .

وَالصُّلْحُ بِمَنْزِلَةِ الْقَضَاءِ اود ښځې سړې سره په شي باندې صلح کول د قاضي دحکم په مرتبه کې دی لِأَنَّ وِلَايَتَهُ عَلٰى نَفْسِهِ أَقْوٰى مِنْ وِلَايَةِ الْقَاضِي ځکه چې د خاوند ولایت خپل ذات باندې د قاضي د ولایت نه زیات دې بِخِلَافِ الْمَهْرِ په خلاف د مهر لِأَنَّهُ عِوَضٌ ځکه چې دا عوض وي .

تشریح:- اود خاوند خپلې ښځې سره په څه شي باندې صلح کول داسې دی .لکه د قاضي حکم کول.ځکه چې د خاوند ولایت په خپل ځان باندې د قاضي د ولایت نه زیات دې.ځکه چې د نفقه کوم مقدارقاضي مقرر کړې دې.که خاوند اوغواړي .نو ددې د زیاتی التزام کولې شي .نو صلح په منزله د قضاء د قاضي شوه.بلکه ددې نه هم زیاته مستحکم ده.په خلاف د مهر،ځکه چې دا د ملكِ بضع عوض وي .په دې وجه دا د قاضي د حکم نه بغیر لازمیږي .

## د خاوند په مرګ باندې د نفقه سقوط

وَإِنْ مَاتَ الزَّوْجُ او که خاوند مړشو بَعْدَمَاقَضَى عَلَيْهِ بِالنَّفَقَةِ روسته ددې نه چې قاضي په ده باندې د نفقې حکم ورکړو وَمَضَى شُهُورٌ او څو میاشتې تیرې شوې سَقَطَتِ النَّفَقَةُ نو( ددې ) نفقه ساقط شوه وَكَذَاإِذَامَاتَتِ الزَّوْجَةُ اوهم دغه ډول که ښځه مړه شوه

تشریح:- مسئله داده.که خاوند ته د نفقه ورکولوحکم ورکړې شو.خوقاضي ښځې ته د قرضه اخستلو حکم ورنکړو.بیا خاوند مړشو.او څومیاشتې تیرې شوې.نو نفقه به ساقط وي .دغه ډول که ښځه مړه شوه.نو هم به ساقطیږي .

لِأَنَّ النَّفَقَةَ صِلَةٌ ځکه چې نفقه عطیه ده وَالصِّلَاتُ تَسْقُطُ بِالْمَوْتِ او عطایات د مرګ په وجه ساقطیږي كَالْهِبَةِ تَبْطُلُ بِالْمَوْتِ قَبْلَ الْقَبْضِ لکه ځنګه چې هبه د قبضه کاوه نه وړاندې د مرګ په وجه باطلیږي

تشریح:- دلیل دادې.چه نفقه یوه عطیه ده.او داسې عطیات د مرګ په وجه ساقطیږي .لکه مثلاً یوکس څه شی هبه کړلو اود ،،موهوب له،، د قبضه نه وړاندې هبه کوونکې مړشو.یا موهوب له مړشو.نو هبه باطلیږي .او امام شافعي رحمه الله فرمائي .چه د قاضي د حکم نه وړاندې هم نفقه د خاوند په ذمه باندې پور کیږي .اود خاوند په مرګ باندې نه ساقطیږي .بلکه د خاوند د ترکه څخه به ئې ښځه وصول کوي .

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللّٰهُ او امام شافعي رحمه الله فرمائیلي دي تَصِيرُدَيْنًاقَبْلَ الْقَضَاءِ چې د قاضي د حکم نه

وړاندې به هم د خاوند په ذمه پور وی **وَلَا تَسْقُطُ بِالْمَوْتِ** اود مرګ په وجه په نه ساقطیږی .**لِأَنَّهُ عِوَضٌ عِنْدَهُ** ځکه چې د امام شافعي رحمه الله په نیز نفقه پور ده **فَصَارَ كَسَائِرِ الدُّيُونِ** نود نورو قرضونو پشان شوه +

تشریح:- دامام شافعي رحمه الله په نیز نفقه د ملك بضع عوض دې.نودا به په نورو قرضونو باندې قیاس کولې شي .چه لکه څنګه دیون، د مدیون په مرګ سره نه ساقطیږی .دغه ډول د خاوند په مرګ سره دښځې نفقه هم نه ساقطیږی .

**وَجَوَابُهُ قَدْ بَيَّنَّاهُ** او ددې ځواب موږ بیان کړې دې.

تشریح:- علامه مرغیناني رحمه الله فرمائی .چه موږ ددې ځواب وړاندې بیان کړې دې.یعنی په تیره شوې مسئله کې «وإن کان صغیرة لایستمع به فلا نفقة لها» لاندې بیان شوې دې.چه د ملك بضع عوض مهر وی .اود یوځیز دوې (دوه) عوضه نشی کیدلې.په دې وجه د ملك بضع عوض نفقه نشی کیدلې.

## د پیشګی (ایډوانس) نفقه نه روسته د خاوند فوت کیدل

**وَإِنْ أَسْلَفَهَا نَفَقَةَ السَّنَةِ** او که خاوند خپلې ښځې ته د یو کال نفقه ورکړله **أَيْ عَجَّلَهَا** یعنی پیشګی ( ایډوانس) نې ورکړله **ثُمَّ مَاتَ** .بیا خاوند مړشو **لَمْ يُسْتَرْجَعْ مِنْهَا شَيْءٌ** نود ښځې څخه به هیڅ واپس نشی اخستې **وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُمَا اللَّهُ تَعَالَى**[1] اودا د امام ابوحنیفه اود ابویوسف رحمهما الله په نیز دی

حل اللغة: ① اسلف: وړاندې ورکول ② الكسوة: جامې ③ الاحتباس: بندول ④ انتهاء: ختمیدل ]

تشریح:- مسئله داده.که خاوند خپلې ښځې ته د یوکال نفقه ایډوانس (په یوځل) ورکړله.بیا ددې مودې تیریدلو نه مخکې خاوند مړشو.یا دده ښځه مړه شوه.نوددې ښځې نه یا دده د ترکه څخه به هیڅ واپس نشی اخستلې.دا د شیخینو رحمهما الله مذهب دې.

**وَقَالَ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللَّهُ** او امام محمد رحمه الله فرمائی **يُحْتَسَبُ لَهَا نَفَقَةُ مَا مَضَى** چې څومره زمانه تیره شوه.ددې نفقه به حساب کړې شي .دا به د ښځې لپاره شي **وَمَا بَقِيَ فَهُوَ لِلزَّوْجِ** او پاته به د خاوند لپاره وی **وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللَّهُ تَعَالَى** اوهم دا دامام شافعي رحمه الله قول دې **وَعَلَى هَذَا الْخِلَافِ الْكِسْوَةُ**[1] اوهم دا اختلاف په لباس کې دې

تشریح:- امام محمد رحمه الله فرمائی .چه څومره زمانه تیره شوې ده.ددې په حساب نفقه به ښځې ته پریخودلې شي .او پاته به خاوند ته واپس کولې شي .اوکه ښځې دا هلاك کړلو.نو ددې څخه به ددې د حق نه علاوه قیمت اخستلې شي .داد امام شافعي رحمه الله قول دې.امام احمد رحمه الله هم ددې قائل دې.اوهم دا اختلاف په لباس کې هم دې.

**لِأَنَّهَا اسْتَعْجَلَتْ عِوَضًا** ځکه چې ښځې د عوض په طور دا شی پیشګی واخستلو **عَمَّا تَسْتَحِقُّهُ عَلَيْهِ** چې ددې استحقاق ددې په خاوند باندې **بِالِاحْتِبَاسِ** دده په قید کاوه سره شوې وو **وَقَدْ بَطَلَ الِاسْتِحْقَاقُ بِالْمَوْتِ** اود خاوند په مرګ باندې دا استحقاق باطل شو **فَيَبْطُلُ الْعِوَضُ بِقَدْرِهِ** نوهم ددې په مقدار به عوض هم باطلیږی **كَرِزْقِ الْقَاضِي** لکه د قاضی روزینه **وَعَطَاءِ الْمُقَاتِلَةِ** اود مجاهدینو عطیه،

تشریح:- د امام محمد رحمه الله دلیل دادې.چه د خاوند په بندولو چې د کوم شی استحقاق دې ته په خاوند باندې

---

[1] القول الراجح هو قول الشيخين رحمهما الله كذا فى فتح القدير (٢٠٥\٤) وردالمحتار (٧١٧\٢) والخانية (١٩٨\١) والبحرالرائق (١٩١\٤) وخلاصة الفتاوى (٥٧\٢) نقلاً عن القول الراجح (٣٨٤\١)-

[1] القول الراجح: هو قول الشيخين (رحمهما الله) كذا فى فتح القدير (٢٠٥\٤) و ردالمحتار (٧١٧\٢) والخانية (١٩٨\١) البحرالرائق (١٩١\٤) وخلاصة الفتاوى (٥٧\٢) نقلا عن القول الراجح (٣٨٤\١).



حاصل وو.دې د وړاندې نه د عوض په طور واخستلو.اود خاوند په مرګ باندې دا استحقاق باطل شو.نو ددې په حساب به عوض هم باطل وی .لکه مثلاً قاضی د وړاندې نه د یوې مودې روزانه نفقه واخستله. اوبیا د مودې پوره کیدلو نه وړاندې د قاضی انتقال اوشو.نوحساب به کولې شي .اود پاته مودې د ورځو نفقه به د قاضی د ترکه نه واپس اخستلې شي .او لکه مثلاً د مجاهدینو عطیه که دوی د یوې مودې عطیه او رزق د وړاندې واخستلو.بیا ددې موده پوره کیدلو نه وړاندې دوی مړه شول.نود پاته مودې رزق به ددوی نه واپس اخستلې شي .

**وَلَهُمَا** اود شیخینو رحمهما الله دلیل دادې **أَنَّهُ صِلَةٌ** چې نفقه عطیه ده **وَقَدِ اتَّصَلَ بِهِ الْقَبْضُ** حالانکه ددې سره دښځې قبضه متصل شوې ده. **وَلَا رُجُوعَ فِي الصِّلَاتِ بَعْدَ الْمَوْتِ** اود مرګ نه روسته په عطیاتو کې رجوع نه کیږی **لِانْتِهَاءِ حُكْمِهَا** ځکه چې ددې حکم پوره کیږی **كَمَا فِي الْهِبَةِ** .لکه په هبه کې **وَلِهَذَا لَوْ هَلَكَتْ مِنْ غَيْرِ اسْتِهْلَاكٍ** اوهم په دې وجه که دا نفقه دښځې د هلاکاوه نه بغیر ضائع شوه **لَا يُسْتَرَدُّ شَيْءٌ مِنْهَا بِالْإِجْمَاعِ** نو بالاجماع به ددې نه هیڅ واپس نشی اخستې

تشریح:- د شیخینو رحمهما الله دلیل دادې.چه نفقه یوعطیه ده.حالانکه دا د ښځې په قبضه کې راغلې ده.او عطیات د مرګ نه روسته واپس نشی ورکولې کیدلې.ځکه چې ددې حکم پوره کیږی .لکه څنګه چې په هبه کې حکم دې.او هم په دې وجه دا نفقه که د ښځې د هلاکاوه نه بغیر ضائع شوه.نو بالاجماع به ددې نه هیڅ واپس نشی اخستلې.

**وَعَنْ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللَّهُ أَنَّهَا** اود امام محمد رحمه الله نه ( دویم) روایت دادې **إِذَا قَبَضَتْ نَفَقَةَ الشَّهْرِ أَوْ مَا دُونَهُ** که ښځې د یوې میاشت یا ددې نه د کم نفقه وصول کړله **لَا يُسْتَرْجَعُ مِنْهَا شَيْءٌ** نو ددې څخه به هیڅ واپس نشی اخستې **لِأَنَّهُ يَسِيرٌ** ځکه چې دا یو معمولی شی دې **فَصَارَ فِي حُكْمِ الْحَالِ** نو ګویا د فی الحال نفقه شوه.

تشریح:- د امام محمد رحمه الله نه دوهم روایت دادې.که ښځې د یوې میاشت یا د کم نفقه وصول کړله.نود خاوند په مړکیدلو به ددې نه هیڅ واپس نشی اخستلې.ځکه چې دا یومعمولی شی دې.نوګویا چې د فی الحال نفقه به وی .یعنی لکه څنګه چې ښځې د فی الحال واجب نفقه واخستله.نود مرګ په وجه واپس نشی اخستلې.دغه ډول که نې د یومیاشت نفقه واخستله.نود مرګ په وجه به په دې صورت کې هم واپس نشی اخستلې.والله اعلم

## د مولا په اجازت سره آزادې ښځې سره د غلام واده کولو نه روسته ددې ښځې د نفقې حکم

**وَإِذَا تَزَوَّجَ الْعَبْدُ حُرَّةً** او که غلام یوې آزادې ښځې سره نکاح اوکړله **فَنَفَقَتُهَا دَيْنٌ عَلَيْهِ** نو ددې نفقه به په غلام باندې پور وی **يُبَاعُ فِيهَا** چې دا به په نفقه کې خرڅولې شي .**وَمَعْنَاهُ إِذَا تَزَوَّجَ بِإِذْنِ الْمَوْلَى** او ددې مطلب دادې چې غلام د مولا په اجازت سره نکاح کړې **لِأَنَّهُ دَيْنٌ وَجَبَ فِي ذِمَّتِهِ** ځکه چې نفقه یو پور دې چې دغلام په ذمه واجب شو **لِوُجُودِ سَبَبِهِ** ځکه چې ددې ( دوجوب) سبب بیاموندې شو **وَقَدْ ظَهَرَ وُجُوبُهُ فِي حَقِّ الْمَوْلَى** اود قرضې وجوب به د مولا په حق کې هم ښکاره کیږی **فَيَتَعَلَّقُ بِرَقَبَتِهِ** نو( دا قرضه) به د غلام سټ سره متعلق کیږی. **كَدَيْنِ التِّجَارَةِ فِي الْعَبْدِ التَّاجِرِ** لکه څنګه چې د سوداګر غلام سټ سره د تجارت پور متعلق کیږی

حل اللغة: ① تبوأ: دجماع کاوه موقع ورکول ② منزل: کور ③ استرداد: واپس کول]

تشریح:- مسئله داده.که غلام د مولا په اجازت سره یوې آزادې ښځې سره نکاح اوکړله.نو ددې ښځې نفقه به په غلام باندې پور وی .اودا غلام به دخپلې ښځې په نفقه کې خرڅولې شي .

دلیل دادې.چه نفقه یو پور دې.چه دا د غلام په ذمه واجب دې.ځکه چې د نفقه د وجوب سبب، یعنی عقد د نکاح موجود شو.او نفقه واجب کیدل، دده د مولا په حق کې هم ښکاره شو.ځکه چې مولا په رضا مندئ

سره اجازت ورکړې وو.نوګویا چې مولا هم د نفقه په وجوب باندې راضي دې.په دې وجه به دا قرضه د غلام د ذمې سره متعلق وی .لکه مثلاً یوتاجر غلام ته مولا د تجارت اجازت ورکړلو.بیا ده په قرضو معامله اوکړله.نو په خپل ذمې باندې ئې قبضه اوکړله.نودا غلام به په قرضه کې خرخولې شی .

وَلَهُ او مولا ته دا اختیارشته أَنْ يَفْدِيَ چې دې ( دا غلام) په فدیه کې ورکړی لِأَنَّ حَقَّهَا فِي النَّفَقَةِ خکه چې د ښځې حق صرف په نفقه کې دې لَا فِي عَيْنِ الرَّقَبَةِ.د غلام په سټ کې نه دې

تشریح:- خو مولا ته دا اختیارشته.چه دې ددې فدیه ورکړی .دلیل دادې.چه د ښځې حق په نفقه کې دې.د غلام په ذمه کې نه دې.نو هرکله چې مولا د ښځې نفقه اداکړله.نو ددې نه روسته په نفقه کې د ښځې حق پاته پاتې نشو.په دې وجه د فدیه ور کاوه نه روسته به د ښځې په نفقه کې غلام نشی خرخولې.

فَلَوْمَاتَ الْعَبْدُ او که دا غلام مړشو سَقَطَتْ نو نفقه به سقاطیږی . وَكَذَا إِذَا قُتِلَ اوهم دغه ډول که قتل کړې شو فِي الصَّحِيحِ نو بیا هم د صحیح قول ( په بنا (بنیاد) باندې) ساقطیږی لِأَنَّهُ صِلَةٌ خکه چې نفقه د ژوند عطیه وه.

تشریح:- که غلام د خپلې ښځه په نفقه کې خرڅ شو.بیا د مشتری سره د یوې مودې نفقه په ده راغله.نو په دوهم خلی به بیا خرخولې شی .خکه چې د زمانه په تیریدلو سره نفقه جدیده واجبیږی .نودا د نوې نفقه په حکم کې دې.په دې وجه به بار بار دې لپاره خرخولې شی .

هم داحکم د مدبر اود مکاتب دې.که دواړو د مولا په اجازت سره نکاح اوکړله.نو په دوی به نفقه واجب وی .خودا دواړه به د نفقه اود مهر ادا کاوه لپاره نشی خرخولې.بلکه دوی ته به حکم ورکولې شی .چه مزدوری کوی .اود خپلې ښځې نفقه او مهر اداکوی .خکه چې مدبر اومکاتب د یوملك نه بل ملك اړخ ته منتقل کیدل نه قبلوی .

او که دا غلام کوم چې د مولا په اجازت سره نکاح کړې ده.مړشو.نو دده د ښځې نفقه به ساقط شی .اود مولا څخه به هم مطالبه نشی کیدلې.اوهم دغه ډول به نفقه ساقطیږی .کله چې غلام قتل کړې شی .صحیح قول هم دا دې.خکه چې نفقه یوه عطیه ده.او عطیات د مرګ په وجه ساقطیږی .خکه نفقه ساقطیږی .

## وینځې سره د آزاد سړي د نکاح نه روسته ددې ښځې د نفقې حکم

وَإِنْ تَزَوَّجَ الْحُرُّ أَمَةً او که آزاد سړی ( د یوبل کس) وینځې سره نکاح اوکړله فَبَوَّأَهَا مَوْلَاهَا مَعَهُ مَنْزِلًا او مولا خپله وینځه دده سره د شپې جلا اوسولو اجازت ورکړو فَعَلَيْهِ النَّفَقَةُ نو په ده به نفقه واجب وی . لِأَنَّهُ تَحَقَّقَ الِاحْتِبَاسُ خکه چې احتباس اوموندې شو وَإِنْ لَمْ يُبَوِّئْهَا فَلَا نَفَقَةَ لَهَا او که مولا د جلا اوسیدلو اجازت ورنکړو.نو په خاوند به نفقه واجب نه وی لِعَدَمِ الِاحْتِبَاسِ خکه چې احتباس اونه موندې شو.

حل اللغة: ① یخلی خالي کوی خانله کوی ② احیان کله کله

تشریح:- مسئله داده.که آزاد سړی د یوکس د وینځې سره نکاح اوکړله.او مولا خپلې وینځې ته ددې خاوند سره د شپې د جلا اوسیدلو اجازت ورکړلو.نوپه خاوند به ددې نفقه واجب وی .خکه چې د ښځې د اړخه احتباس موجود شو.او نفقه د احتباس بدل دې.او که مولا د جلا اوسیدلو اجازت ورنکړو.نو په خاوند به نفقه واجب نه وی .خکه چې احتباس اونه موندې شو.

وَالتَّبْوِئَةُ اوشپه تیرولو( څخه مطلب) دادې أَنْ يُخَلِّيَ بَيْنَهَا وَبَيْنَهُ فِي مَنْزِلِهِ وَالتَّبْوِئَةُ چې مولا وینځه د خاوند سره دده په کور کې یواځې پریږدی . وَلَا يَسْتَخْدِمَهَا اود وینځې نه خپل خدمت وانخلي وَلَوِ اسْتَخْدَمَهَا بَعْدَ التَّبْوِئَةِ اوکه مولا د اوسولو نه روسته خپله وینځه پخپل خدمت کې واخستله سَقَطَتِ النَّفَقَةُ .نو نفقه به ساقطیږی لِأَنَّهُ فَاتَ الِاحْتِبَاسُ خکه چې احتباس فوت شو غَيْرُ لَازِمَةٍ او اوسول په مولا باندې لازم نه دی عَلَى مَا مَرَّ فِي النِّكَاحِ



لکه څنګه چې په کتاب النکاح کې تیرشو

تشریح:- او ,,تبویه،، یعنی د شپې جلا اوسیدلو اود دیره کیدلو نه مراد دادی .چه مولا خپلې وینځې ته د خاوند په کورکې د اوسیدلو اجازت ورکړی .اود وینځې نه خپل خدمت نه اخلی .اوکه مولا اول د اوسیدلو اجازت ورکړلو.بیا ئې خپل خدمت لپاره راوستله.نو نفقه به ساقط وی .خکه احتباس چې موجب د نفقه دې.دا فوت شو.په دې وجه به په خاوند باندې نفقه هم واجب نه وی .او په مولا باندې اوسول.او دیره کول لازم نه دی .لکه څنګه چې په ,, باب نکاح الرقیق،، کې تیرشوی دی .

وَلَوْ خَدَمَتْهُ الْجَارِيَةُ أَحْيَانًا اوکه وینځې پخپله کله کله دمولا خدمت اوکړو مِنْ غَيْرِ أَنْ يَسْتَخْدِمَهَا ددې نه بغیر چې مولا ددې نه خدمت واخلی لَا تَسْقُطُ النَّفَقَةُ نو نفقه به نه ساقطیږی لِأَنَّهُ لَمْ يَسْتَخْدِمْهَا لِيَكُونَ اسْتِرْدَادًا خکه چې مولا ددې د واپس اخستلو په خیال ددې نه خدمت نه دې اخستې وَالْمُدَبَّرَةُ وَأُمُّ الْوَلَدِ فِي هَذَا كَالْأَمَةِ وَاللَّهُ تَعَالَى أَعْلَمُ بِالصَّوَابِ او مدبره وینځه او ام ولد په دې حکم کې د وینځې پشان دی

تشریح:- که وینځې په خپله کله کله د مولا خدمت کولو.حالانکه مولا دې ته د خدمت کاوه نه وو ونیلی .نو په دې صورت کې (په خاوند) باندې نفقه نه ساقطیږی .خکه چې مولا ددې د واپس اخستلو په اراده باندې خدمت نه دې اخستې. او مدبره او ام ولد په دې حکم کې د وینځې پشان دی .یعنی لکه څنګه چې د اوسیدلو نه وړاندې د وینځې لپاره نفقه نه وی .دغه ډول د مدبره او ام ولد لپاره هم د اوسولو نه وړاندې نفقه نه وی .

## د سکنی احکام

فَصْلٌ: وَعَلَى الزَّوْجِ او په خاوند باندې واجب دی أَنْ يُسْكِنَهَا فِي دَارٍ چې ښځه په جداکور کې آباده کړی مُفْرَدَةٍ لَيْسَ فِيهَا أَحَدٌ مِنْ أَهْلِهِ .چه په هغې کې د خاوند د اهل څنې هیڅ څوك نه وی إِلَّا أَنْ تَخْتَارَ ذَلِكَ البته که ښځه پخپله دا خوښه کړی

حل اللغة: ① تضرر نقصان رسی ② المعاشرة: ژوند تیرول ③ انتقاص: کمول ④ الاستمتاع: فائده حاصلول.]

تشریح:- د ښځې د نفقه بیانولو نه روسته اوس د سکنی احکام بیانوی .فرمائی .په خاوند باندې واجب دی .چه دې خپله ښځه په خانله بیل کور کې آباده کړی .چه په دې کې د خاوند د کور د خلګو نه هیڅ څوك نه اوسیږی .خو که ښځه د خاوند د کورد خلګ وسره او سیدل خوښوی .نو دې ته اختیار شته.

لِأَنَّ السُّكْنَى مِنْ كِفَايَتِهَا خکه چې د ښځې په کفایت کې سکونت هم دې فَتَجِبُ لَهَا كَالنَّفَقَةِ نود نفقې پشان به دا هم د ښځې لپاره واجب وی وَقَدْ أَوْجَبَهُ اللَّهُ تَعَالَى مَقْرُونًا بِالنَّفَقَةِ او الله تعالی نفقه سره داهم ملاؤکړې او واجب کړې دې

تشریح:- دلیل دادې.چه د ښځې د ضروریاتو څنې سکونت (اوسیدل) هم دې.نود نفقه پشان به دا هم په خاوند باندې واجب وی .اود ابن مسعود رضی الله عنه په قرات کې دی .﴿ اسکنوهن من حیث سکنتم وانفقوا علیهن من وجدکم﴾ یعنی تاسو خپلو ښځو ته د خپل توان مطابق د اوسیدلو لپاره کور ورکړئ.کوم خائې کې چې تاسو اوسیږئ.او دوې ته نفقه ورکوئ.په دې آیت کې الله تعالی د نفقه سره یوځائې سکنی هم واجب کړې ده.نو ثابته شوه.چه د نفقه پشان سکنی هم په خاوند باندې واجب ده.[؟]

وَإِذَا وَجَبَ حَقًّا لَهَا او هرکله چې (سکونت) د ښځې لپاره واجبی حق دې لَيْسَ لَهُ نود سړی لپاره جائز نه دی أَنْ يُشْرِكَ غَيْرَهَا فِيهِ چې ددې په حق کې بل څوك شریك کړی .لِأَنَّهَا تَتَضَرَّرُ بِهِ خکه چې ښځې ته په دې کې ضرر وی فَإِنَّهَا لَا تَأْمَنُ عَلَى مَتَاعِهَا خکه چې دا په دې سره د خپلو اسبابونه بې خطرې نه وی ، وَيَمْنَعُهَا ذَلِكَ مِنَ الْمُعَاشَرَةِ مَعَ زَوْجِهَا او یوځائې اوسیدل به دا د خپل خاوند سره بې تکلفه ( آزادی کولو) نه منع کیږی وَمِنَ الِاسْتِمْتَاعِ او(

دغه شان دجماع او ددې د متعلقاتو نه (به هم منع کیږي) اِلَّا اَنْ تَخْتَارَ الْبَتَّه که ښځه دا اختیار کړي لِاَنَّهَا رَضِيَتْ بِانْتِقَاصِ حَقِّهَا ځکه چې دا به د خپل حق په کمی باندې راضی وی .

**تشریح:-** هرکله چې سکونت د ښځې لپاره واجب حق شو.نود سرې لپاره جائز نه دی .چه ددې په حق کې غیرشریك کړی .ځکه چې ښځې ته په دې کې ضرر وی .یو په دې وجه چې دا به د خپل سامان نه په یره کې وی .دویمه داچه د غیر د شرم څخه به خاوند سره بې تکلفه (آزاده) نشي اوسیدلې.او دریمه داچه د جماع اود جماع د متعلقاتو څخه به منع کیږي .خوکه ښځه پخپله په دې خبره باندې راضی شی .چه سخرګنې سره اوسیږی .نودا ددې لپاره جائز دی .ځکه چې دا دخپل حق په کموالی باندې راضی ده.یعنی د خاوند د کور خلګ ددې سره د یوځائي اوسیدلو نه ددې د حق په وجه منع شوی وو.خوهرکله چې دې پخپله خپل حق ساقط کړلو.نو ددې لپاره به د کلام (خلاف) ګنجائش نه وی .

## د مخکینۍ ښځې ځوی دویمې ښځې سره اوسول

وَاِنْ كَانَ لَهُ وَلَدٌ مِنْ غَيْرِهَا او که د خاوند زوی ددې نه علاوه دبلې ښځې نه (پیدا) وی فَلَيْسَ لَهُ نو خاوند ته اختیار نشته اَنْ يُسْكِنَهُ مَعَهَا چې زوی ددې سره یوځائي آباد کړی لِمَا بَيَّنَّا دهغه دلیل په وجه کوم چې موږ بیان کړې دې.

**تشریح:-** په دې عبارت کې دوې (دوه) مسئلې بیان شوی دی .اول دا که د خاوند هلك د مخکینۍ ښځې نه پیدا شوې وی .نود خاوند لپاره جائز نه دی .چه دې هلك خپلې ښځې سره آباد کړی .ددې دلیل په تیره شوې مسئله کې تیرشوې دې.چه ښځې ته به ضرر وی .

وَلَوْ اَسْكَنَهَا فِيْ بَيْتٍ مِنَ الدَّارِ مُفْرَدٍ او که خاوند خپله ښځه په کور کې یو جلا اطاق کې وَلَهُ غَلْقٌ چې ددې د بندولو دروازه موجود وی .آباده کړه. كَفَاهَا نو ددې ښځې لپاره کافی ده لِاَنَّ الْمَقْصُوْدَ قَدْ حَصَلَ ځکه چې مقصود حاصل شو.

**تشریح:-** دویمه مسئله داده.که خاوند خپله ښځه دکور په یوه خانله اطاق کې دیره کړله.چه په دې کې د بندولو دروازه هم موجود ده.نود ښځې لپاره کافی ده.ځکه چه مقصود حاصل شو.یعنی بغیر د کراهته دې سره جماع کول ممکن دی .

## د ښځې رشته داران ملاویدلو نه منع کول

وَلَهُ او خاوند ته اختیار دې دې اَنْ يَمْنَعَ وَالِدَيْهَا وَوَلَدَهَا مِنْ غَيْرِهِ چې د ښځې مورپلار ،او ددې خامن کوم چې د مخکنی خاوند نه (پیدا) دی وَاَهْلَهَا مِنَ الدُّخُوْلِ عَلَيْهَا او ددې د کور خلګ ددې خواته راتګ و نه منع کړی لِاَنَّ الْمَنْزِلَ مِلْكُهُ ځکه چې داکور خود خاوند ملك فَلَهُ حَقُّ الْمَنْعِ مِنْ دُخُوْلِ مِلْكِهِ نوده ته پخپل ملك کې د راتګ و نه د بندولو اختیار حاصل دې

**حل اللغة:** ① یمنع منع کوی ② اللباث درنګ تیرول،وخت تیرول ③ تطویل اوږدول ④ الدوام همیشوالي ⑤ النظر کتل ]

**تشریح:-** مسئله: خاوند ته دا اختیار شته چه دې د خپلې مور اوپلار،او ددې هغه زوی چې د مخ کښینې خاوند نه پیدا شوې وی .دوی او ددې نور رشته داران دې ته د راتګ و نه منع کړی .دلیل دادې چه دا کور خود خاوند ذاتی ملك دې.نو ده ته پخپل ملك کې د راتګ و نه د منع کاوه اختیار حاصل دې.

وَلَا يَمْنَعُهُمْ مِنَ النَّظْرِ اِلَيْهَا وَكَلَامِهَا فِيْ اَيِّ وَقْتٍ اخْتَارُوْا اود ښځې مورپلار وغیره چې کله دوی اوغواړی .چه ددې ښځې ارخ ته اوګوری او ددې سره خبرې اوکړی .منع نکړی لِمَا فِيْهِ مِنْ قَطِيْعَةِ الرَّحِمِ ځکه چې په دې کې قطع



رحمی ده وَلَيْسَ لَهُ فِيْ ذٰلِكَ ضَرَرٌ اود خاوند په حق کې څه ضرر نشته

**تشریح:-** اوکه د ښځې مورپلار وغیره دا کتل غواړی .یا خبرې کول غواړی .نو خاوند دا ښځه د کتلو اود خبرو کاوه نه نشی منع کولې.ځکه چې په دې کې قطع رحمی لازمیږی .او قطع رحمی حرام ده.ځکه نقل دی چه «عن جبیربن مطعم انه سمع النبیﷺ یقول لا یدخل الجنة قـاطع» یعنی د جبیربن مطعم نه نقل دی .چه دوی د نبی کریمﷺ نه دا واوریدل.چه قطعی رحمی کونکې به جنت ته نه داخلیږی .او ښځې ارخ ته په کتلو او خبرو کاوه سره د خاوند په حق کې هیڅ ضرر نه راځی .

وَقِيْلَ او ونیلی شوی دی لَا يَمْنَعُهُمْ مِنَ الدُّخُوْلِ وَالْكَلَامِ چې د راتګ واود خبرو کاوه نه منع نکړی وَاِنَّمَا يَمْنَعُهُمْ مِنَ الْقَرَارِ وَالدَّوَامِ البته د اوسیدلو نه منع کولې شی : لِاَنَّ الْفِتْنَةَ فِي اللَّبَاثِ وَتَطْوِيْلِ الْكَلَامِ ځکه چې فساد په ایساریدو ،اود ناوخته پورې خبروکولوکې دې

**تشریح:-** بعض مشائخ فرمائی .چه د خبرویشان دوی د راتګ ونه هم نشی منع کولې.البته د پاتې کیدلو نه منع کولې شی .ځکه که فتنه اوفساد پیدا کیږی .نو دلته کې په پاتې کیدلو او په ډیرخبروسره به پیدا کیږی .ځکه چې زیاتې خبرې کول د قیل وقال (تاوئیلی ما ونیلی) سبب جوړیږی .او ددې نتیجه شر اوفساد وی .

وَقِيْلَ او ونیلی شوی دی . لَا يَمْنَعُهَا مِنَ الْخُرُوْجِ اِلَى الْوَالِدَيْنِ چې خپله ښځه به مورپلار کره د تللو نه نه منع کوی . وَلَا يَمْنَعُهُمَا مِنَ الدُّخُوْلِ عَلَيْهَا فِيْ كُلِّ جُمُعَةٍ او ددې مورپلار به ددې خواله د راتګ و نه په هره جمع کې (دیوځل راتلو) نه منع کوی

**تشریح:-** اکثرعالمان فرمائی .چه ښځه خپل مورپلار کره هره جمعه (هفته) کې یوځل د تلو او ددې مور پلار دلته کې د راتلونه نشی منع کولې.بلکه په هفته کې به د یوځل ملاقات کاوه اجازت وی .هم په دې فتوی ده.

وَفِيْ غَيْرِهِمَا مِنَ الْمَحَارِمِ التَّقْدِيْرُ بِسَنَةٍ اود مور پلار نه علاوه نور محارمو(په حق) کې اندازه یوکال ده وَهُوَ الصَّحِيْحُ اوهم دا صحیح ده.

**تشریح:-** د مورپلار نه علاوه نورو رشته دارانو ته په کال کې یوځل د ملاقات کولواجازت دې.که ښځه دوی کره لاړه شی . او که دوی دلته کې راشی .صیحیح قول هم دادې.بعض حضرات په یوه میاشت کې د یوځل ملاقات اجازت ورکوی .

## د غائب سړی په مال کې د هغه د ښځې نفقه اداکول

وَاِذَا غَابَ الرَّجُلُ او که سړې غائب شو وَلَهُ مَالٌ فِيْ يَدِ رَجُلٍ او دده مال د یو کس په قبضه کې دې يَعْتَرِفُ بِهِ چې ددې اقرار کوی وَبِالزَّوْجِيَّةِ او (دا اقرار هم کوی .چه دا ښځه ددې غائب سړی ) بی بی ده فَرَضَ الْقَاضِيْ فِيْ ذٰلِكَ الْمَالِ نَفَقَةَ زَوْجَةِ الْغَائِبِ وَوَلَدِهِ الصِّغَارِ وَوَالِدَيْهِ نو قاضی به په دې مال کې ددې غائب سړې د ښځې،دده د نابالغه اولاد او دده دمورپلار نفقه مقرر کوی وَكَذَا اِذَا عَلِمَ الْقَاضِيْ ذٰلِكَ اوهم دغه ډول که قاضی ته پخپله داخبره معلومه وی وَلَمْ يَعْتَرِفْ بِهِ حالانکه موْدع ددې اقرار نه وی کړې

**حل اللغة:** ① یعترف اقرار کوی ② الزوجیة وادهٔ توب ③ المودع امانتګر ④ الامتناع منع کول ]

**تشریح:-** مسئله داده.که خاوند په سفرکې لاړلو.او دده څه مال د یوسړی مثلا د حامد په قبضه کې دې.چه دې ددې امانت اقرار کوی .اودا اقرار هم کوی .چه دا ښځه ددې غائب سړی ښځه ده.نوقاضی به ددې مال نه ددې غائب سړی د ښځې او دده د نابالغ اولاد،او دده د مورپلار نفقه مقررکوی .او دغه ډول که قاضی ته پخپله داخبره معلومه وی .چه دا ښځه دده بی بی (بیګم) ده.او دده مال د حامد سره دې .حالانکه حامد ددې

اقرارنه دي کړي.چه دا ښځه د غائب سړی بی بی ده.او ما سره دده مال امانت دي.نو په دې صورت کې به هم قاضی ددې مال نه د غائب سړی دښځې اود نابالغه بچو او دده د مورپلار نفقه مقررکوی .

**لِأَنَّهُ لَمَّا أَقَرَّ بِالزَّوْجِيَّةِ الْوَدِيعَةِ** ځکه چې کله مؤدع د زوجیت او ودیعت دواړو اقرار اوکړو **فَقَدْ أَقَرَّ** نوده دا اقرار هم اوکړو **أَنَّ حَقَّ الْأَخْذِ لَهَا** چې ښځې ته ددې مال نه د اخستلو حق دي **لِأَنَّ لَهَا** ځکه ښځې ته اختیار وی **أَنْ تَأْخُذَ مِنْ مَالِ الزَّوْجِ حَقَّهَا مِنْ غَيْرِ رِضَاهُ** چې د خاوند د مال نه د خاوند د رضا نه بغیر خپل حق واخلی

**تشریح:-** دلیل دادې.چه هرکله حامد د زوجیت اود امانت دواړو اقرار اوکړلو.نوده دا هم اقرار اوکړلو.چه ښځې ته ددې مال نه د اخستلو حق شته. ځکه چې ښځې ته اختیار وی .چه د خاوند د رضامندئ نه بغیر دده د مال نه د ارتیا په اندازه واخلی .او په دې دلیل هغه حدیث دې.چه د ابوسفیانؓ ښځې هنده ته نبی کریمﷺ اوفرمائیل.﴿ خذی من مال زوجك ما یکفیك وولدك بالمعروف﴾

ۛدلته کې یواشکال کیږی .هغه دا که پور غوښتونکی د غائب د مودع (امانت دار) یاد پور داری نه د خپلې قرضې مطالبه اوکړله.په داسې حال کې چې مودع او قرضدار دواړه ددې خبرې اقرار کوی .چه ددې پور غوښتونکی د غائب په ذمه پور دې.او موږ سره د غائب سړی مال هم شته.نو قاضی ددې امانت اود پور مال نه دې غائب ته د پور ور کاوه حکم نشی ورکولې. حالانکه د ښځې اود بچو پشان د پور غوښتونکی پور اداکول هم په غائب باندې واجب دی .

ۛځواب دادې.چه دغائب په حق کې قاضی د هغه شی حکم ورکولې شی .چه کوم دده حق کې ګټور وی .او په کوم شی کې چې په غائب باندې شفقت نه وی .د هغې په اړه کې قاضی ته د حکم ور کاوه اجازت نشته.نود ښځې اوبچو لپاره د نفقه حکم په ورکولوکې په غائب سړی باندې شفقت دې.ځکه چې دده ملك به پاته پاتې وی .اود پور په اداکولوکې دده ملك پاته کیدل نشته.بلکه د یو اجنبی (غیر)کس په وئیلو سره دده په خلاف حکم کول دی .نود توپیر په وجه قاضی د ښځې اود بچو لپاره د نفقه حکم کولې شی .خود پور اداکولوحکم نشی کولې.

**وَإِقْرَارُ صَاحِبِ الْيَدِ مَقْبُولٌ فِي حَقِّ نَفْسِهِ** اود قبضې والا اقرار د خپل خان په حق کې مقبول دې **لَا سِيَّمَا هَاهُنَا** خصوصاً په دې مقام باندې **فَإِنَّهُ لَوْ أَنْكَرَ أَحَدَ الْأَمْرَيْنِ** ځکه که ده په دې دواړو امرونوکې د یو انکار کړې وو **لَا تُقْبَلُ بَيِّنَةُ الْمَرْأَةِ فِيهِ** نو په دې به دښځې ګواهان نه قبلیدل **لِأَنَّ الْمُودَعَ لَيْسَ بِخَصْمٍ فِي إِثْبَاتِ الزَّوْجِيَّةِ عَلَيْهِ** ځکه چې په غائب سړی د زوجیت ثابتولو لپاره ودیعت ایخودونکې مدعی علیه نشی کیدلې **وَلَا الْمَرْأَةُ خَصْمٌ فِي إِثْبَاتِ حُقُوقِ الْغَائِبِ** اونه د غائب سړی په حقوق ثابتولوکې دده ښځه مدعی کیداې شی **وَإِذَا ثَبَتَ فِي حَقِّهِ** نوهرکله چې په دې حق کې ( دا امر) ثابت شو **تَعَدَّى إِلَى الْغَائِبِ** نود غائب په حق کې به هم متعدی وی **وَكَذَا إِذَا كَانَ الْمَالُ فِي يَدِهِ مُضَارَبَةً** اوهم دغه ډول ددې سړی په قبضه کې ( دا مال) د مضاربت په طور دې **وَكَذَا الْجَوَابُ فِي الدَّيْنِ** اوهم دا حکم د غائب په قرضه کې دې

**تشریح:-** په دې عبارت سره هم د یوسوال ځواب ورکوی .سوال دادې.چه د کوم کس سره د غائب سړی مال امانت دې.دده اقرار صحیح کیدل نه دی پکار.ځکه چې دا ،،اقرار علی الغائب،، (د غائب په خلاف اقرار کول) دې.

ځواب:د قابض یعنی د کوم کس سره چې دغائب مال امانت دې.دده اقرار د خپل خان په حق کې مقبول دې.خصوصاً په دې مقام کې ،ځکه که ده په زوجیت یا امانت کې د کوم امر انکار کړې وې.نو په دې به د ښځې ګواهان نشو قبلیدلې.ځکه چې د ښځې ګواهان که د نکاح اود زوجیت ثابتولو لپاره وی .نو په دې وجه به نه قبلیږی .چه مودع (امانت ایخودونکې) په غائب سړی باندې د نکاح په ثابتولوکې مدعی علیه نشی کیدلې.او که ښځې په امانت باندې ګواهان قائم کړل.نو په دې وجه به نه قبلیږی .چه د غائب سړی په



حقوقو ثابتولوکې مدعی نشی کیدلې.بهرحال هرکله چې د ښځې ګواهان قبول نکړې شو.نود مودع اقرار به ضرور قبلیږی .نو هرکله چې د مودع اقرار پخپله دده په حق کې ثابت شو.نود غائب په حق کې به هم متعدي وی .ځکه چې مودع د کوم شی اقرار کړې دې.هغه هم ددې غائب سړی ملك دې.اودا داسې ده.لکه مثلاً یوکس د رمضان میاشت اولیدله.نو مخکې دده په حق کې د رمضان میاشت ثابت شوه.بیا دده نه علاوه نورو اړخ ته متعدی شوه.اوهم دا حکم هغه وخت دې.چه کله مال دده سره د مضاربت په طور وی .یعنی که قابض ددې مال د مضاربت اود زوجیت اقرار اوکړی .یا قاضی ته پخپله علم وی .نو قاضی په دې مال مضاربت کې ددې خلګو نفقه مقررولې شی .اوهم دغه ډول که په دې سړی باندې د غائب سړی قرضه وی .اودې د قرضې اود زوجیت اقرار اوکړی .یا قاضی ته پخپله علم وی .نو بیا هم دا حکم دې.یعنی قاضی په دې مال کې ددې خلګو نفقه مقرر کولې شی .

**وَهَذَا كُلُّهُ** اودا واړه تفصیل هغه وخت دې **إِذَا كَانَ الْمَالُ مِنْ جِنْسِ حَقِّهَا** چې کله د ښځې د حق د جنس ځنې وی **دَرَاهِمَ أَوْ دَنَانِيرَ أَوْ طَعَامًا أَوْ كِسْوَةً مِنْ جِنْسِ حَقِّهَا** ( یعنی ) روپئ ، اشرفئ،غله، یا د ښځې د جنس کپړه وی

**تشریح:-** علامه مرغینانیؒ فرمائی .چه دا واړه تفصیل په هغه صورت کې دې.چه دا مال د ښځې د حق د جنس ځنې وی .مثلاً روپئ وی .یا اشرفئ وی ، یا غله وی .یا د ښځې د حق دجنس لباس وی .یعنی لکه چې ځنګه کپړه ددې ښځې لپاره واجب وی .که ددې جنس کپړه حامد سره امانت وو.نو قاضی به ددې نه کپړه ورکوی .

**أَمَّا إِذَا كَانَ مِنْ خِلَافِ جِنْسِهِ** البته که دا مال خلاف جنس وی **لَا تُفْرَضُ النَّفَقَةُ فِيهِ** نو قاضی به په دې کې نفقه نه مقررکوی .**لِأَنَّهُ يُحْتَاجُ إِلَى الْبَيْعِ** ځکه چې ددې د خرڅولو اړتیا دې **وَلَا يُبَاعُ مَالُ الْغَائِبِ بِالِاتِّفَاقِ**، اود غائب مال بالاتفاق نشی خرڅولې

**تشریح:-** که دا مال دښځې د حق جنس نه خلاف وی .مثلاً کور، غلام، یا نورسامان امانت ایخودلې شوې وی .نوقاضی به ددې نه نفقه نه مقرروی .ځکه چې د نفقه ور کاوه لپاره به ددې خرڅول ضروری وی .اود غائب مال په اتفاق سره نشی خرڅولې.

**أَمَّا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ** (1) د امام ابوحنیفهؒ په :**فَلِأَنَّهُ لَا يُبَاعُ عَلَى الْحَاضِرِ** نیز ځکه چې د حاضر مال نشی خرڅولې کیدلې **وَكَذَا عَلَى الْغَائِبِ** هم دغه ډول دغائب هم ( نشی خرڅولې کیدلې)

**تشریح:-** د حضرت امام ابوحنیفهؒ دلیل دادې.که سړې موجود وې.او حاضر وې.نو قاضی ته به دده د مال خرڅولو اختیار نه وو.ځکه چې د قاضی بیع په دې وجه درست وی .چه مالك د بیع کولونه منع کړې شوې وی .اود امام صاحبؒ په نیز آزاد، عاقل ،بالغ د بیع کاوه نه منع کول باطل دی .نوهر کله چې د حاضر مال نشی خرڅولې.نود غائب په درجه اولی نشی خرڅولې.

**وَأَمَّا عِنْدَهُمَا** او پاتې شو دصاحبینوؒ په نیز **فَلِأَنَّهُ إِنْ كَانَ يَقْضِي عَلَى الْحَاضِرِ** نودا ځکه چې قاضی اګرچه په حاضرباندې ( دده د مال خرڅولو) حکم ورکوی **لِأَنَّهُ يَعْرِفُ امْتِنَاعَهُ** ځکه چې دحاضر انکار کول قاضی ته معلومیږی **لَا يَقْضِي عَلَى الْغَائِبِ** غائب باندې ( داحکم) نشی کولې **لِأَنَّهُ لَا يَعْرِفُ امْتِنَاعَهُ** ځکه چې دده انکار کول نه معلومیږی .

**تشریح:-** پاتې شو د صاحبینوؒ په نیزچه قاضی اګرچه حاضرته د مال خرڅولو حکم ورکولې شی .ځکه

(1) القول الراجح هو قول أبی حنیفةؒ كذا فی الخانیة (١١\٢٠٠) وفتح القدیر(٤\٢١٠١) والعنایة (٤\٢١٠١) وخلاصة الفتاوی (٢\٦١) والهندیة (١\٥٥٢) نقلاً عن القول الراجح (١\٣٨٥)-

چې دحق ادا کاوه نه انکار کول قاضی ته معلومېږي .اود حق اداکولونه انکار کول د قاضی لپاره دبیع دجواز شرط دي.خو په غائب باندې دا حکم نشی کولې.ځکه چې دغائب د حق ادا کاوه نه انکار کول قاضی ته معلوم نه دی .حالانکه د حق ادا کاوه نه انکار کول،د بیع د جواز شرط دې.

## د ښځې نه د قاضی ضامن اخستل

قَالَ امام قدوری رحمه الله فرمائی **وَيَأْخُذُ مِنْهَا كَفِيلًا بِهَا** ([1]) او قاضی به ددې ښځې نه کفیل اخلی **نَظَرًا لِلْغَائِبِ** چې دغائب سرې نګهداشت ( ساتونکې) وی

**حل اللغة:** ① **كفيل**:ذمه وار ② **نظر**:شفقت خیرخواهی ]

**تشریح:-** صورت د مسئلې دادې.چه قاضی به ددې ښځې نه کفیل اخلی .یعنی یوکس به ذمه وار وی .که دا ښځه د نفقه مستحق نه وی .نود غائب مال به واپس اخستلې شی .چه د غائب سړی دمال ساتونکې شی. امام سرخسی رحمه الله فرمائی .چه د ښځې نه کفیل اخستل غوره دی .او که وائې نه خستلو.نوهم جائز دی . او صدرالشهید فرمائی .چه د غائب خاوند د رعایت په خاطر کفیل اخستل صحیح دی .خوقاضی به اول ددې ښځې نه په دې خبره باندې قسم اخلی .چه ددې خاوند دې ته نفقه نه ده ورکړې.ځکه کیدای شی .چه خاوند په سفرکې د تللونه وړاندې دې ښځې ته نفقه ورکړې وی .اودا ښځه په قاضی باندې معامله مشتبه کوی.او دوباره نفقه اخلی .نو هرکله چې دې ښځې قسم اوخوړلو.نو قاضی به دې ښځې ته نفقه ورکوی .اودده ځخه به کفیل (ذمه وار) اخلی .

**لِأَنَّهَا رُبَّمَا** .ځکه کیدای شی **اسْتَوْفَتِ النَّفَقَةَ** چې دې ( خپله ) نفقی پیشګی وصول کړې وی **أَوْطَلَّقَهَا الزَّوْجُ** یا خاوند دې ته طلاق ورکړې وی **وَانْقَضَتْ عِدَّتُهَا** اوعدت تیر شوې وی

**تشریح:-** دلیل دادې چه ممکن ده.دې ښځې د خپل خاوند نه خپله نفقه د وړاندې وصول کړې وی .یا خاوند دې ته طلاق ورکړې وی .او عدت ئې تیر شوې وی .نودا ښځه به د نفقه مستحق نه وی .په دې وجه به د خاوند د رعایت په لحاظ ددې نه کفیل اخستلې شی .

**فَرْقٌ بَيْنَ هٰذَا وَبَيْنَ الْمِيرَاثِ** ( امام ابوحنیفه رحمه الله) ددې اود میراث په منځ کې توپیر کړې دې **إِذَا قُسِمَ** چې کله میراث ویش شی **بَيْنَ وَرَثَةٍ** .د وارثانو په منځ کې **حُضُورٍ بِالْبَيِّنَةِ** ( چې ددې ثبوت) د ګواهانو په ذریعه سره وی **وَلَمْ يَقُولُوا** او دوی دا نه وی وئیلې **لَا نَعْلَمُ لَهُ وَارِثًا آخَرَ** .چه موږ ددوی نه علاوه نور وارثان نه پیژنو. **حَيْثُ لَا يُؤْخَذُ مِنْهُمُ الْكَفِيلُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ** رحمه الله نود امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز به ددوی نه کفیل نشی اخستې

**تشریح:-** حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله د نفقه په صورت کې د کفیل اخستلو حکم کړې دې.اود میراث په صورت کې ئې د کفیل اخستلوحکم نه دې کړې.نو امام صاحب رحمه الله په دې دواړه صورتونوکې توپیر کړې دې.یعنی هرکله چې یوسړې مړشو.او دده موجود وارثانو ګواه پیش کړل.دوی ګواهی ورکړله.چه دا خلګ دده وارثان دی .او دا ئې اونه وئیل.چه موږ ددوی نه علاوه نور وارثان نه پیژنو.نو قاضی به په دوی کې میراث تقسیموی .اود امام ابوحنیفه رحمه الله په نیزبه ددې خلګو نه کفیل نشی اخستلې.

---

[1]) القول الراجح هو قول أبي يوسف رحمه الله توضحه قال ابن الهمام امرأة قال پلندہ زوجي يطيل الغيبة عني فطلبت كفيلا بالنفقة قال ابوحنيفة ليس لها ذلک وقال ابويوسف اخذا كفيلا نبفقة شهر واحد استحسانا وعليه الفتوى كذا في فتح القدير(۲۱۲\۴) و ردالمحتار( ۷۰۲\۲) وخلاصة الفتاوى (۶۲\۲) والبحرالرائق (۱۹۷\۴) والهندية (۵۵۳\۱) نقلاً عن القول الراجح(۳۸۶\۱)-

(1) هو قول أبي يوسف (رحمه الله) كذا في فتح القدير (۲۱۲\۴) و ردالمحتار (۷۰۲\۲) و خلاصة الفتاوى (۶۲\۲) والبحر الرايق (۱۹۷\۴) والهندية (۵۵۳\۱) نقلا عن القول الراجح (۳۸۶\۱).



**لِأَنَّ هُنَاكَ الْمَكْفُولَ لَهُ مَجْهُولٌ** ځکه چې هلته مکفول له مجهول دې **وَهَاهُنَا مَعْلُومٌ** او دلته معلوم دې **وَهُوَ الزَّوْجُ** اوهغه خاوند دې **وَيُحَلِّفُهَا** او قاضی به دې ښځې ته قسم ورکوی **بِاللّٰهِ مَا أَعْطَاهَا النَّفَقَةَ** چې د خدائې قسم ددې خاوند دې ته نفقه نه ده ورکړې **نَظَرًا لِلْغَائِبِ** چې د غائب سړی نګداشت ( ساتونکې) وی .

**تشریح:-** ځکه چې د میراث په صورت کې دا کس معلوم نه دې.د کوم کس لپاره چې کفیل اخستلې شی .اود نفقه په صورت کې مکفول له معلوم دې.چه دا د ښځې خاوند دې.

## د غائب سړی د مال نه قاضی ته د نفقه ورکولو اختیار

قَالَ او امام قدوری رحمه الله فرمائی **وَلَا يَقْضِي بِنَفَقَةٍ فِي مَالِ غَائِبٍ** قاضی به د چا په مال کې د چا د نفقې حکم نه ورکوی **إِلَّا لِهٰؤُلَاءِ** سوا د هغه خلګ و **وَوَجْهُ الْفَرْقِ** او وجه د توپیر داده **هُوَ أَنَّ نَفَقَةَ هٰؤُلَاءِ وَاجِبَةٌ قَبْلَ قَضَاءِ الْقَاضِي** چې ددې خلګو نفقه د قاضی د حکم نه وړاندې واجب وه. **وَلِهٰذَا كَانَ لَهُمْ** او په دې وجه دې خلګو له جائز وو **أَنْ يَأْخُذُوا قَبْلَ الْقَضَاءِ فَكَانَ** چې دوی د قاضی دحکم نه وړاندې واخلی **قَضَاءُ الْقَاضِي إِعَانَةً لَهُمْ** نود قاضی حکم ددې دواړو لپاره اعانت شو

**حل اللغة:** ① **اعانة**: کومک کول ② **الاستدانة**: پور اخستل ③ **اقاويل** جمع د قول، وینا]

**تشریح:-** مسئله داده.چه قاضی د غائب په مال کې صرف ددې ذکرشوی خلګو لپاره د نفقه حکم ورکولې شی .یعنی د ښځې، د وړوبچو ،اود مورپلار لپاره یاچه څوك ددوی په حکم کې وی .لکه بالغ اولاد چې ګډ شل وی .یا ښځې وی .او ددوی نه علاوه د نورو محارمو(لکه رور، تره، او نور رشته داران) لپاره قاضی د غائب په مال کې د نفقه حکم نشی ورکولې.په دې دواړه صورتونو کې وجه د توپیر داده.چه د ښځې وغیره ذکر شوی خلګو لپاره نفقه د قاضی د حکم نه وړاندې هم واجب وه.په دې وجه دې خلګو لپاره جائز دی .چه د قاضی د حکم نه وړاندې خپله نفقه وصول کړی .خود غائب په مال باندې قابض دوی له نه ورکوی .په دې وجه د قاضی حکم دې خلګو لپاره اعانت (مدد) شو.

**أَمَّا غَيْرُهُمْ مِنَ الْمَحَارِمِ** .پاتې شو نورمحارم **فَنَفَقَتُهُمْ إِنَّمَا تَجِبُ بِالْقَضَاءِ** نو ددوی نفقه د قاضی په حکم سره واجبیږی **لِأَنَّهُ مُجْتَهَدٌ فِيهِ** ځکه چې دامسئله مختلف فیه ده **وَالْقَضَاءُ عَلَى الْغَائِبِ لَا يَجُوزُ** او په غائب باندې د قاضی حکم ورکول جائز نه دی

**تشریح:-** پاتې شو نور محارم چې ددوی نفقه د محتاجې په وجه ددې سړی په ذمه لازم وی .نودا نفقه به هغه وخت واجب وی .چه کله قاضی حکم ورکړی .ځکه چې دا مسئله مختلف فیه ده.ځکه چې امام شافعی رحمه الله دغیر محارم لپاره د نفقه د وجوب قائل نه دې.نو چونکه د غیرمحارم نفقه د قاضی په حکم سره واجبیږی .او زموږ په نیز ،،قضاء علی الغائب،، جائز نه ده.په دې وجه قاضی د غائب په مال کې ددوی لپاره د نفقه حکم نشی ورکولې.

**وَلَوْ لَمْ يَعْلَمِ الْقَاضِي بِذٰلِكَ** او که قاضی ددې ښځې بی بی کیدلو معلوم نه وی . **وَلَمْ يَكُنْ مُقِرًّا بِهِ** ( او کوم کس سره چې مال دې) هغه هم ددې اقرار نه کوی **فَأَقَامَتِ الْبَيِّنَةَ عَلَى الزَّوْجِيَّةِ** نو ښځې پخپله بی بی کیدلو باندې ګواهان قائم کړل **أَوْلَمْ يُخَلِّفْ مَالًا** یا خاوند هیڅ مال نه وی پریښولې (پریخودې) **فَأَقَامَتِ الْبَيِّنَةَ** نو ښځې په دې غرض ګواه قائم کړل **لِيَفْرِضَ الْقَاضِي نَفَقَتَهَا عَلَى الْغَائِبِ** چې په غائب باندې قاضی ددې نفقه مقررکړی **وَيَأْمُرَهَا بِالِاسْتِدَانَةِ** دې ته ( په خاوند باندې) د پور اخستلوحکم ورکړی **لَا يَقْضِي الْقَاضِي بِذٰلِكَ** نو قاضی داسې حکم نشی ورکولې **لِأَنَّ فِي ذٰلِكَ قَضَاءً عَلَى الْغَائِبِ**.ځکه چې په داسې کولوکې غائب باندې حکم ورکول لازمیږی

**تشریح:-** په دې عبارت کې دا مسئله بیان شوې ده.که قاضی ته دا معلومه نه وی .چه دا ښځه د غائب سړی بی بی ده.اود کوم کس سره چې مال دې.یعنی حامد هغه هم ددې اقرار نه کوی .یعنی مودع د امانت اقرار کوی .خو ددې اقرار نه کوی .چه دا ښځه د غائب سړی بی بی ده.نو ښځې د خپل ځان په اړه کې دغائب سړي په ښځه کیدلو باندې ګواهان قائم کړل.یا داسې صورت شو.چه غائب هیڅ مال ( چاسره امانت) نه وی پرېښولې (پریخودې).نو ښځې په دې باندې ګواهان قائم کړل.چه زه دده ښځه یم.چه قاضی په غائب باندې ددې نفقه مقرر کړی .اودا په خاوند باندې د پور کاوه حکم ورکړی .نوقاضی داسې حکم نشی ورکولې.خکه چې په داسې کولوکې ،،قضاء علی الغائب،، لازمیږی . اودا زمونږ په نیز جائز نه دی .په دې وجه قاضی په دې صورت کې په خاوند باندې د پور اخستلو حکم نشی ورکولې.

**وَقَالَ زُفَرُ** رحمه الله اوامام زفر رحمه الله فرمائی **يَقْضِي فِيهِ** چې قاضی به په دې معامله کې حکم ورکوی **لِأَنَّ فِيهِ نَظَرًا لَهَا** خکه چې په دې کې د ښځې لپاره بهتری ده **وَلَا ضَرَرَ فِيهِ عَلَى الْغَائِبِ** اود غائب سړی په حق کې هیڅ ضرر نشته **فَإِنَّهُ لَوْ حَضَرَ** خکه چې هرکله خاوند حاضرشو **وَصَدَّقَهَا** او ده د ښځې د قول تصدیق اوکړو **فَقَدْ أَخَذَتْ حَقَّهَا** (نو ښکاره شوه) چې ښځې خپل حق اخستې دې **وَإِنْ جَحَدَ** اوکه ښځې انکار اوکړو **يَحْلِفُ** نو دده نه په قسم اخستې شی **فَإِنْ نَكَلَ** نوکه دې د قسم نه انکار اوکړو **فَقَدْ صَدَقَ** نو بیا به هم د ښځې تصدیق کیږی **وَإِنْ أَقَامَتْ بَيِّنَةً** اوکه ښځې ګواهان پیش کړل **فَقَدْ ثَبَتَ حَقُّهَا** نو بیا به هم د ښځې حق ثابتیږی **وَإِنْ عَجَزَتْ** اوکه دا (دګواهانو پیش کاوه نه) عاجزه شوه **يَضْمَنُ الْكَفِيلُ أَوِ الْمَرْأَةُ** نو کفیل یا ښځه به ددې مال ضمان ورکوی

**تشریح:-** حضرت امام زفر رحمه الله فرمائی .چه قاضی به دښځې ګواهان قبلوی .او ددې څخه به کفیل اخلی .اود خاوند د مال څخه به د نفقه اخستلوحکم ورکوی .او که د غائب سړی مال نه وی .نوبه خاوند باندې به دقرضه اخستلو حکم ورکوی .خکه چې په دې کې دښځې لپاره بهتری ده.اود غائب سړی په حق کې هیڅ ضرر نه دې.خکه چې هرکله دې حاضر شو.اود ښځې د قول تصدیق ئې اوکړلو.نو ثابته شوه.چه ده خپل حق اخستې دې.او که خاوند د خپلې ښځې د قول تصدیق اونکړلو.بلکه انکار ئې اوکړلو.نود خاوندنه به قسم اخستلې شی .نوکه دې د قسم نه انکار اوکړی .نو بیا هم د ښځې تصدیق لازمیږی .او که ښځې ګواهان قائم کړل.نو بیا به هم د ښځې حق ثابت شی .اوکه ښځه د ګواهانو قائمولو نه عاجزه شوه.او خاوند قسم اوخوړلو.چه دا زما ښځه نه ده.یا مادې ته نفقه ورکړې وه.نو په دې صورت کې به د نفقه هغه مقدار کوم چې قاضی د خاوند دغائب والی په زمانه کې د هغه د مال نه ورکړې دې.ددې ضامن به ددې ښځې کفیل (ذمه وار) وی .یا به دا ښځه پخپله ضامنه وی .

**وَعَمَلُ الْقُضَاةِ الْيَوْمَ عَلَى هَذَا** اود قاضیانو عمل نن صباپه دې خبره دې **أَنَّهُ يَقْضِي بِالنَّفَقَةِ عَلَى الْغَائِبِ** چې قاضی په غائب سړی باندې دنفقې حکم ورکوی **لِحَاجَةِ النَّاسِ** خکه چې د خلګو اړتیا دې **وَهُوَ مُجْتَهَدٌ فِيهِ**.اودا مسئله هم اجتهادی ده **وَفِي هَذِهِ الْمَسْأَلَةِ أَقَاوِيلُ** او په دې مسئله کې نور اقوال هم دی **مَرْجُوعٌ عَنْهَا** چې ددې رجوع شوې ده **فَلَمْ نَذْكُرْهَا** نو مونږ دا ذکرنکړل

**تشریح:-** علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی .چه په دې زمانه کې د قاضیانو عمل د امام زفر رحمه الله په قول باندې دې.چه قاضی د غائب سړی په مال کې د نفقه حکم ورکوی .خکه چې په خلګ وکې ددې اړتیا دې. اودا مسئله هم مختلف فیه ده.او په دې مسئله کې نور اقوال هم شته. چې مجتهدینو دې ته توجه نه ده ورکړې.نومونږ هم دا اقوال ذکر نه کړل.

## د فرقت نه روسته د نفقه اوسکنی احکام

**فَصْلٌ وَإِذَا طَلَّقَ الرَّجُلُ امْرَأَتَهُ** او کله چې سړی خپلې ښځې ته طلاق ورکړو **فَلَهَا النَّفَقَةُ وَالسُّكْنَى فِي عِدَّتِهَا** نو دښځې لپاره به ددې په عدت کې نفقه اوسکونت واجب وی **رَجْعِيًّا كَانَ أَوْ بَائِنًا** (که طلاق) رجعی وی او که بائن وی



**حل اللغة:** ① **السكنى:** استوګنه ② **المبتوتة:** هغه ښځه چې طلاق بائن سره طلاقه شوې وی ③ **الانعدام:** نشتوالې ④ **الاحتباس:** بندول ⑤ **الصيانة:** ساتنه ]

**تشریح:-** صورت د مسئلې دادې.که یوکس خپلې ښځې ته طلاق ورکړو.که طلاق رجعی ئې ورکړې وی .او که طلاق بائن ئې ورکړې وی .نود ښځې په عدت کې به ددې لپاره نفقه اوسکنی واجب وی .

**وَقَالَ الشَّافِعِيُّ** رحمه الله او امام شافعی رحمه الله فرمائی : **لَا نَفَقَةَ لِلْمَبْتُوتَةِ** چې مبتوته ( د کومې ښځې نه چې قطعی جدائی وی ) لپاره نفقه نشته **إِلَّا إِذَا كَانَتْ حَامِلًا** خو که دا حامله وی (نو نفقه شته)

**تشریح:-** امام شافعی رحمه الله فرمائی .چه کومه ښځه قطعی طور باندې جداکړې شوې وی .مثلاً یوطلاق بائن یا درې طلاقونه ئې ورکړې وی .یا ئې خلع کړې وی .نو ددې لپاره نفقه نشته.امام مالك اوامام احمد رحمهما الله هم ددې قائل دی .خوکه دا ښځه حامله وی .نو بالاجماع به ددې لپاره نفقه واجب وی .بهرحال د طلاق رجعی په صورت کې د عدت تیریدلو پورې د ښځې لپاره بالاتفاق نفقه او سکنی واجب ده.

**أَمَّا الرَّجْعِيُّ فَلِأَنَّ النِّكَاحَ بَعْدَهُ قَائِمٌ** بهرحال رجعی په دې وجه چې د طلاق رجعی نه روسته نکاح قائم پاتې کیږی **لَا سِيَّمَا عِنْدَنَا** بالخصوص زمونږ په نیز **فَإِنَّهُ يَحِلُّ لَهُ الْوَطْءُ** خکه چې د طلاق رجعی په عدت کې د خاوند لپاره وطی کول حلال دی

**تشریح:-** دلیل دادې.چه د طلاق رجعی نه روسته دعدت پورې نکاح قائم پاتې وی .خاصکر زمونږ په نیز.خکه چې زمونږ په نیز د عدت په زمانه کې د مطلقه رجعیه سره وطی حلال ده.

**وَأَمَّا الْبَائِنُ**.او پاتې شو بائن، **فَوَجْهُ قَوْلِهِ** نود امام شافعی رحمه الله دقول وجه هغه حدیث دې **مَا رُوِيَ {عَنْ فَاطِمَةَ بِنْتِ قَيْسٍ** کوم چې د فاطمه بنت قیس نه روایت کړې شوې دې **قَالَتْ:** چې فاطمه بنت قیس اووئیل **طَلَّقَنِي زَوْجِي ثَلَاثًا** چې ماته زما خاوند درې طلاق راکړې دی **فَلَمْ يَفْرِضْ لِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُكْنَى وَلَا نَفَقَةً }** [1] نو رسول الله ﷺ زما لپاره څه نفقه او سکونت فرض نکړو **وَلِأَنَّهُ لَا مِلْكَ لَهُ** او خکه چې ( مطلقه بائنه کې ) د خاوند ملك نه پاتې کیږی **وَهِيَ مُرَتَّبَةٌ** او نفقه مرتب کیږی **عَلَى الْمِلْكِ** .په ملك نکاح باندې **وَلِهَذَا لَا تَجِبُ لِلْمُتَوَفَّى عَنْهَا زَوْجُهَا** اوهم په دې وجه متوفی عنها زوجها ،، لپاره نفقه نه واجبیږی **لِانْعِدَامِهِ** خکه چې ملك زائل شو

**تشریح:-** پاتې شو طلاق بائن، نو په دې کې اختلاف دې.د امام شافعی رحمه الله دقول وجه هغه حدیث دې.کوم چې امام بخاری رحمه الله نه علاوه یوجماعت د فاطمه بنت قیس رضی الله عنها نه روایت کړې دې.فاطمه وائی .چه ماته زما خاوند درې طلاق راکړل.نو رسول الله ﷺ زما لپاره نه نفقه فرض کړله.او نه سکنی .او دوهم دلیل دادې.چه په مطلقه بائنه باندې د خاوند ملك نه پاتې کیږی .اود امام شافعی رحمه الله په نیز نفقه د ملك نکاح عوض وی .نو هرکله چې په معتده بائنه باندې د خاوند ملك نه پاتې کیږی .نو ددې لپاره به نفقه هم واجب نه وی .او هم په دې وجه چې د کومې ښځې خاوند مړشوې وی .ددې لپاره هم نفقه واجب نه وی .خکه چې د خاوند ملك نکاح زائل شوې دې.

(۱)اخرجه مسلم فی الطلاق رقم ٤٦ وابوداود فی الطلاق باب ۹۳ رقم ۸۸۲۲ والترمذی فی الطلاق باب ۵ رقم ۱۱۸۰ والنسائی فی الطلاق رقم ۳۳۲۰ وابن ماجه فی الطلاق باب ۱۰رقم ۲۰۳۶ والدارمی فی الطلاق باب ۱۰ واحمد فی المسند(۳۷۳\۶)۔

**بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَتْ حَامِلًا** په خلاف ددې چې دا ښځه حامله وی **لِأَنَّا عَرَفْنَاهُ بِالنَّصِّ** ځکه چې د حامله نفقه واجبيدل موږ ته په نص قرآني سره معلوم شوی دی . **وَهُوَ قَوْلُهُ تَعَالَى { وَإِنْ كُنَّ أُولَاتِ حَمْلٍ فَأَنْفِقُوا عَلَيْهِنَّ } الآيَة** اوهغه د الله تعالی قول ((**وَإِنْ كُنَّ أُولَاتِ حَمْلٍ فَأَنْفِقُوا عَلَيْهِنَّ**))

**تشريح:-** ددې په خلاف كه دا ښځه حامله وی .نو ددې لپاره به نفقه واجب وی .ځكه چې دحامله ښځې نفقه واجب كيدل موږ ته په نص د قرآن سره معلوميږی .يعنی ((**وَإِنْ كُنَّ أُولَاتِ حَمْلٍ فَأَنْفِقُوا عَلَيْهِنَّ**))كه دا مطلقه ښځې حمل والا وی .نو دوی ته نفقه وركوئ.

**وَلَنَا** او زموږ دليل دادې **أَنَّ النَّفَقَةَ جَزَاءُ احْتِبَاسٍ** چې نفقه د خپلې ښځې خان سره د بندساتلو عوض دې **عَلَى مَا ذَكَرْنَا** لكه څنګه چې مونږه ذكركړی دی **وَالِاحْتِبَاسُ قَائِمٌ فِي حَقِّ حُكْمٍ مَقْصُودٍ بِالنِّكَاحِ وَهُوَ الْوَلَدُ** او احتباس اوس هم د نكاح مقصود يعنی د ولدپه حق كې موجود دی **إِذِ الْعِدَّةُ وَاجِبَةٌ لِصِيَانَةِ الْوَلَدِ** ځكه چې عدت د بچی ساتنه لپاره واجبيږی **فَتَجِبُ النَّفَقَةُ** نود( عدت) نفقه به واجب وی **وَلِهَذَا كَانَ لَهَا السُّكْنَى بِالْإِجْمَاعِ** وهم په دې وجه بالاتفقا دښځې لپاره سكنى واجبيږی **وَصَارَ** نوداسې صورت شو **كَمَا إِذَا كَانَتْ حَامِلًا** لكه چې دا حمل والا وی

**تشريح:-** زموږ دليل دادې.چه ښځې ته نفقه وركول،دا خپل ځان سره د بندولو عوض دې.لكه څنګه چې موږ د باب النفقه په پيل كې بيان كړی دی .اودا احتباس( بندول) د نكاح په مقصود، يعنی د بچی په حق كې اوس هم موجود دی .ځكه چې عدت په دې وجه واجب وی .چه د بچی ساتنه اوكړې شی .او هركله چې احتباس موجود دې.نود ښځې لپاره به نفقه هم واجب وی .او هم ددې احتباس په وجه د مطلقه بائنه لپاره بالاجماع سكنى واجب ده.اودا داسې صورت شو.لكه چې دا حامله ښځه وی .

**وَحَدِيثُ فَاطِمَةَ بِنْتِ قَيْسٍ رَدَّهُ عُمَرُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ** اود فاطمه بنت قيس حديث حضرت عمر رضی الله عنه ردكړی دی **فَإِنَّهُ قَالَ** وې فرمائيل **لَا نَدَعُ كِتَابَ رَبِّنَا وَسُنَّةَ نَبِيِّنَا بِقَوْلِ امْرَأَةٍ** .چه موږ د خپل پرودګار قرآن اود خپل پيغمبر ﷺ سنت د يوې ښځې په وينا باندې نه پريږدو **لَا نَدْرِي** موږ ته پته نه ده **صَدَقَتْ** چې دا رشتوني ده **أَمْ كَذَبَتْ** اوكه دروغجنه ده **حَفِظَتْ** (او) دې ته ياد پاتې شوی دی **أَمْ نَسِيَتْ** او كه هيرشوی دی **سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ** اوما د رسول الله ﷺ نه اوريدلی دی چې نبی كريم ﷺ اوفرمائيل **لِلْمُطَلَّقَةِ الثَّلَاثِ** چې كومې ښځې ته درې طلاقه وركړې شی .**النَّفَقَةُ وَالسُّكْنَى** دهغې لپاره نفقه اوسكونت واجب دې **مَا دَامَتْ فِي الْعِدَّةِ**[1] چې تركومه پورې دا پخپل عدت كې وی

**تشريح:-** د فاطمه بنت قيس رضی الله عنها د حديث خواب دادې.چه دا حديث حضرت عمر رضی الله عنه رد كړې دې.وې فرمائيل.چه موږ د خپل پرودګار كتاب اود خپل پيغمبر ﷺ سنت د يوې ښځې په وينا باندې نه پريږدو.موږ نه يوخبر،چه دا رشتونې ده.او كه دروغژنه ده.اودې ته ياد دی .او كه هيرشوی دی .ماد رسول الله ﷺ نه اوريدلی دی .چه نبی كريم ﷺ فرمائيل.چه كومې ښځې ته درې طلاقه وركړې شی .د هغې لپاره نفقه اوسكنی واجب ده.تركومه پورې چې دا په عدت كې وی .

**وَرَدَّهُ أَيْضًا زَيْدُ بْنُ ثَابِتٍ وَأُسَامَةُ بْنُ زَيْدٍ وَجَابِرٌ وَعَائِشَةُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ** [1] او حديث د فاطمه بنت قيس، زيد بن ثابت،اسامه بن زيد ،او حضرت عاشه رضی الله عنها هم ردكړې دې.

[1] من حديث فاطمة بنت قيس (رضى الله عنها) اخرجه مسلم فى الطلاق رقم ٤٢ )۔

[1] اما رواية عائشة رضى الله تعالىٰ عنها فأخرجه مسلم فى الطلاق رقم ٤٢ وأما رواية جابر فأخرجه الدار قطنى فى سننه (٢)[illegible] رقم (٥٩)۔



**تشريح:-** د فاطمه بنت قيس رضی الله عنها حديث زيد بن ثابت، اسامه بن زيد، جابربن عبدالله، او ام المومنين عائشه رضی الله عنها ردكړی دې.دحضرت عمر رضی الله عنه د قول «كتاب ربنا.» نه مراد آيت((**أَسْكِنُوهُنَّ مِنْ حَيْثُ سَكَنْتُمْ مِنْ وُجْدِكُمْ**)) دې.اود «سنت نبينا.» نه مراد د حضرت عمر رضی الله عنه قول «سمعت رسول الله ﷺ يقول للمطلقة.» دې.

## د كندې لپاره د عدت په موده كې د نفقه عدم وجوب

**وَلَا نَفَقَةَ لِلْمُتَوَفَّى عَنْهَا زَوْجُهَا** اود،، متوفی عنها زوجها،، لپاره نفقه نشته.

**حل اللغة:** ① **التربص:** انتظار كول ② **ايجاب:** واجبول ③ **المرعی:** لحاظ ساتلې شوې ]

**تشريح:-** مسئله: كه ديوې ښځې خاوند مړشو.نو ددې ښځې لپاره د عدت نفقه نشته.امام احمد رحمه الله ددې قائل دې.اود امام شافعی رحمه الله هم يو قول دادې.

**لِأَنَّ احْتِبَاسَهَا لَيْسَ لِحَقِّ الزَّوْجِ** ځكه چې ددې احتباس د حق زوج لپاره نه دې **بَلْ لِحَقِّ الشَّرْعِ** بلكه د حق شرع په وجه دې **فَإِنَّ التَّرَبُّصَ عِبَادَةٌ مِنْهَا** ځكه چې تربص ( خپل خان بندول) د متوفی عنها زوجها د اړخه عبادت دې **أَلَا تَرَى** آيا دا نه ګورئ. **أَنَّ مَعْنَى التَّعَرُّفِ عَنْ بَرَاءَةِ الرَّحِمِ** چې د رحم پاكی معلومول، **لَيْسَ بِمُرَاعًى فِيهِ** په دې موده كې ملحوظ نه دی **حَتَّى لَا يُشْتَرَطَ فِيهَا الْحَيْضُ** تردې چې په دې موده كې حيض شرط نه دې **فَلَا تَجِبُ نَفَقَتُهَا عَلَيْهِ** نو په خاوندبه دمتوفی عنها زوجها نفقه واجب نه وی

**تشريح:-** د ،متوفی عنها زوجها، لپاره د نفقه د عدم وجوب دليل دادې.چه د ښځې خپل خان بندول د خاوند په حق كې ذكر دی .دا د ،متوفی عنها زوجها،د اړخه عبادت دې.نود رحم پاكوالې معلومول. د ،،متوفی عنها زوجها،، په عدت كې ملحوظ نه دی .تردې چې په دې عدت كې حيض هم شرط نه دې. كه د څلورمياشتو او لس ورځو پورې هيڅ حيض رانشی .نو بيا به هم عدت تيرشی .نو په دې عدت كې به په متوفی خاوند باندې نفقه واجب نه وی .

**وَلِأَنَّ النَّفَقَةَ تَجِبُ شَيْئًا فَشَيْئًا** او ځكه چې نفقه په لږه لږه واجبيږی **وَلَا مِلْكَ لَهُ بَعْدَ الْمَوْتِ** اود خاوند ملك د مرګ نه روسته پاته نه پاتې كيږی **فَلَا يُمْكِنُ إِيجَابُهَا فِي مِلْكِ الْوَرَثَةِ** نود وارثانو په ملك كې نفقه واجبول ممكن نه دی.

**تشريح:-** دوهم دليل دادې.چه نفقه په لږه لږه واجبيږی .اود مرګ نه روسته د خاوند ملك پاتې نشو.نود وارثانو په ملك كې نفقه واجبيدل ممكن نه دی .

## كه ښځه د فرقت سبب وی نو ددې نفقه

**وَكُلُّ فُرْقَةٍ جَاءَتْ مِنْ قِبَلِ الْمَرْأَةِ بِمَعْصِيَةٍ** او هره جدائی چې د معصيت په وجه د ښځې د اړخه راغلې وی **مِثْلَ الرِّدَّةِ** مثلاً ښځه مرتده شوه **وَتَقْبِيلِ ابْنِ الزَّوْجِ** يا په شهوت سره دې د خاوند د خوی نه كوكې( واخسته.( ښكل نې كړو) **فَلَا نَفَقَةَ لَهَا** نو ددې لپاره به نفقه نه وی **لِأَنَّهَا صَارَتْ حَابِسَةً نَفْسَهَا بِغَيْرِ حَقٍّ** ځكه چې ددې خپل خان بندول ناقص شوی دی **فَصَارَتْ كَمَا إِذَا كَانَتْ نَاشِزَةً**.نودا داسې شوه لكه چې دې نافرمانی كړې وی .(او دكور نه وتلې وی )

**حل اللغة:** ① **معصية:** ګناه ② **ناشزة:** د خاوند نافرمانه ③ **التسليم:** سپارل،حواله كول ④ **الاستيفاء:** پوره حاصول]

**تشريح:** مسئله:كه د ښځې د اړخه د معصيت په وجه فرقت پيدا شو.مثلاً ښځه د اسلام نه واوښتله. يادې په شهوت سره دخپل خاوند زوې ښكل كړلو.نو دې لپاره به نفقه نه وی .ځكه چې دا خپل حق په ناحقه بندونكې ده.نودا داسې شوه.لكه چې دې نافرمانی كړې وی .اود كور نه بهر وتلې وی .

مصنف رحمه الله په عبارت کې نفقه ذکر کړې ده. ځکه چې سکنی ددې معتدې لپاره هم واجب وی. ځکه چې معتدې لپاره په کور کې اوسیدل واجب دی. نود ښځې په معصیت سره سکنی نه ساقطیږی. چې د مبسوط کې دی. چه د مرتدې نفقه خاص د ردت په وجه نه ساقطیږی. بلکه په دې وجه ساقطیږی. چه د ردت په وجه به دا قیده او بندولې شی. او ،،محبوسه بحقه،، (چه په خپل حق کې ګرفتاره شوې وی) د نکاح د قیام په حالت کې د نفقه مستحقه نه وی. نو هم دغه ډول به په عدت کې هم د نفقه مستحقه نه وی. تردې که ښځه مرتده شوه. او قیده نکړې شوه. بلکه د خاوند په کور کې وی. نو ددې لپاره به نفقه واجب وی. ځکه چې حبس او قیدکول موجود نشو. (عینی، عنایه)

بِخِلَافِ الْمَهْرِ بَعْدَ الدُّخُولِ په خلاف د دخول نه روسته د مهر لِأَنَّهُ وُجِدَ التَّسْلِيمُ فِي حَقِّ الْمَهْرِ بِالْوَطْيِ ځکه چې دمهر په حق کې وطی سره سپارل موجود شو

تشریح: په خلاف ددې که ښځه د وطی نه روسته مرتده شوه. نو ددې مهر به ساقط نه وی. ځکه چې مهر د ملك بضع عوض وی. اود ښځې د اړخه په وطی سره د بضع سپارل موجود شو. په دې وجه به د خاوند د ذمې نه مهر نه ساقطیږی.

وَبِخِلَافِ مَا إِذَا جَاءَتِ الْفُرْقَةُ مِنْ قِبَلِهَا بِغَيْرِ مَعْصِيَةٍ او په خلاف ددې صورت چې فرقت د ښځې د اړخه د معصیت نه بغیر پیدا شوی وی كَخِيَارِ الْعِتْقِ لکه خیار عتق وَخِيَارِ الْبُلُوغِ او خیار بلوغ وَالتَّفْرِيقِ لِعَدَمِ الْكَفَاءَةِ اود کفو نه کیدلو په وجه تفریق، لِأَنَّهَا حَبَسَتْ نَفْسَهَا بِحَقٍّ ځکه چې دې خپل ځان په حق سره منع کړې دی وَذَلِكَ لَا يُسْقِطُ النَّفَقَةَ اودا نفقه نه ساقطوی كَمَا إِذَا حَبَسَتْ نَفْسَهَا لِاسْتِيفَاءِ الْمَهْرِ لکه مثلاً که دې خپل ځان د مهر وصولولو لپاره منع کړې وی

تشریح: ددې په خلاف که دښځې د اړخه فرقت د معصیت نه بغیر پیدا شو. مثلاً په خیار عتق، اود خیار بلوغ په وجه ښځې تفریق کړې دې. یا د کفوء نه کیدلو په وجه تفریق شوې وی. نود عدت په زمانه کې به ددې ښځې لپاره نفقه واجب وی. دغه ډول کومې ښځې چې لعان اوکړو. اود لعان په وجه تفریق اوشو. نو ددې لپاره به هم نفقه او سکنی واجب وی. او دغه ډول که د خلع او ایلاء په وجه بائنه شوه. نو بیا به هم ددې لپاره نفقه او سکنی وی. دلیل دادې چه په دې صورتونو کې ښځې خپل ځان په حق سره بند کړې دې. او داسې بندول نفقه نه ساقطوی. لکه مثلاً دې خپل ځان خاوند ته د تللو نه په دې وجه بند کړلو. چه خپل مهر معجل وصول کړی. نو نفقه قائم پاتې کیدل نه ساقطیږی.

## د طلاق نه روسته د ښځې مرتد کیدل او ددې نفقه

وَإِنْ طَلَّقَهَا ثَلَاثًا اوکه خاوند (خپلې ښځې ته) درې طلاقه ورکړل ثُمَّ ارْتَدَّتْ وَالْعِيَاذُ بِاللهِ ددې نه روسته دا،، العیاذ بالله،، مرتده شوه سَقَطَتْ نَفَقَتُهَا نو ددې نفقه ساقط شوه، وَإِنْ مَكَّنَتْ ابْنَ زَوْجِهَا مِنْ نَفْسِهَا اوکه دې د خپل خاوند خوی ته پخپل نفس باندې قابو ورکړله فَلَهَا النَّفَقَةُ نو ددې لپاره به نفقه وی مَعْنَاهُ ددې مطلب دادې مَكَّنَتْ بَعْدَ الطَّلَاقِ چې د طلاق نه روسته دې قدرت ورکړو. (وطی نې اوکړه)

تشریح:- مسئله داده. که خاوند خپلې ښځې ته درې طلاقه ورکړل. ددې نه روسته ښځه العیاذ بالله مرتده شوه. نو ددې ښځې نفقه ساقط شوه. او که د درې طلاقونو نه روسته ښځې د خپل خاوند خوی ته (چه د مخکې نې ښځې نه پیدا شوې وی) پخپل ځان باندې قابو ورکړلو. یعنی ده سره نې خپل مخ تور کړلو. نو ددې لپاره به نفقه واجب وی.

لِأَنَّ الْفُرْقَةَ تَثْبُتُ بِالطَّلَقَاتِ الثَّلَاثِ ځکه چې فرقت په درې طلاقو سره ثابت شو وَلَا عَمَلَ فِيهَا لِلرِّدَّةِ وَالتَّمْكِينِ او په فرقت کې مرتده کیدلو او قدرت ور کاوه ته هیڅ دخل نشته إِلَّا أَنَّ الْمُرْتَدَّةَ تُحْبَسُ (صرف داده) چې مرتده



محبوس کولای شی حَتَّى تَتُوبَ تردې چې توبه اوکړی وَلَا نَفَقَةَ لِلْمَحْبُوسَةِ اود داسې قیدی ښځې لپاره نفقه نه وی. وَالْمُمَكِّنَةُ لَا تُحْبَسُ او (د خاوند خوی ته قدرت ورکونکې ښځه نشی قید کولې) فَلِهَذَا يَقَعُ الْفَرْقُ نو په دې وجه (په دې دواړو کې) توپیر واقع کیږی.

تشریح:- ددې دواړو مسئلو په مینځ کې توپیر دادې. چه په دواړه صورتونو کې فرقت په درې طلاقونو سره ثابت شوې دې. او په مرتد کیدلو، اود ابن زوج سره وطی کاوه ته دې فرقت کې هیڅ دخل نشته. خو دومره خبره ده. چه کومه ښځه مرتده شی. هغه قید کولې شی. تردې چې توبه اوباسی. اود داسې قیدی ښځې لپاره نفقه نه وی. او کومې ښځې چې د خاوند خوی سره وطی اوکړله. نودا نشی قیدکولې. په دې وجه ددې لپاره نفقه وی. په دې وجه دې دواړو مسئلو کې توپیر اوشو.

## د اولاد نفقه

فَصْلٌ: وَنَفَقَةُ الْأَوْلَادِ الصِّغَارِ عَلَى الْأَبِ اود نابالغ اولاد نفقه په پلار باندې واجب ده لَا يُشَارِكُهُ فِيهَا أَحَدٌ په دې کې به پلار سره په نفقه کې هیڅ څوك نه شریکیږی كَمَا لَا يُشَارِكُهُ فِي نَفَقَةِ الزَّوْجَةِ لکه چې دښځې په نفقه کې هیڅ څوك نه شریکیږی

تشریح:- د ښځې د نفقه نه د فارغ کیدلو نه روسته په دې فصل کې د اولاد نفقه بیانوی. فرمائی. چه د نا بالغ اولاد نفقه صرف ددوی په پلار باندې واجب وی. په دې کې پلار سره هیڅ څوك شریك نه وی. لکه څنګه چې دده د ښځې په نفقه کې هیڅ څوك شریك نه وی. داحکم د ظاهرالروایة مطابق دې. او په دې باندې د څلورو امامانو اتفاق دې.

لِقَوْلِهِ تَعَالَى ځکه چې الله تعالی فرمائیلی دی ((وَعَلَى الْمَوْلُودِ لَهُ رِزْقُهُنَّ)) وَالْمَوْلُودُ لَهُ هُوَ الْأَبُ او مولود له پلار دې

تشریح:- دلیل د الله تعالی قول ((وَعَلَى الْمَوْلُودِ لَهُ رِزْقُهُنَّ)). دې. یعنی ،،ددې ښځو رزق په مولولود له باندې واجب دې،، اومولود له پلار دې. ددې آیت نه استدلال داسې دې. چه د میاندو رزق په پلار باندې د ولد په وجه دې. نو هرکله چې د ولد په وجه په پلار باندې د میاندو رزق واجب دې. نو په ده به د ولد رزق په درجه اولی واجب وی. او په عدم اشتراك باندې دلیل دادې. چه په مور کیدلو، او په ولد کیدلو دواړو کې هیڅ یوهم شراکت نه قبلوی. یعنی دا نشی کیدلې. چه ښځه دې په یو وخت کې د دوې [دوه] سړو منکوحه وی. اونه دا کیدلې شی. چه بچې د دوې [دوه] پلارانو زوې وی. نو هم دغه ډول کومه نفقه چې دې دواړو لپاره ثابت ده. دا هم شرکت نه قبلوی.

د امام ابوحنیفه رحمه الله نه یو روایت دادې. چه د بچی نفقه د میراث مطابق په دریو کې دوې [دوه] برخې په پلار، اویوه برخه په مور باندې واجب ده. امام طحاوی رحمه الله بیان کړی دی. چه بالغ اولاد که محتاجه وی. نو په دوی کې به د مؤنث په نفقه باندې مجبوروولې شی. د مذکر په نفقه به نشی مجبورکولې. ځوکه بالغ اولاد معذوره وی. مثلاً نابینا (ړوند) وی. یا ګډ وی. یا نې پښې (خپې) لاسونه شل وی. نو ددوی په نفقه به هم پلار مجبوروولې شی.

## په مور باندې بچی له د پیو ورکولو عدم وجوب

فَإِنْ كَانَ الصَّغِيرُ رَضِيعًا اوکه ماشوم بچې شیدې څکی فَلَيْسَ عَلَى أُمِّهِ أَنْ تُرْضِعَهُ نو ددې په مور باندې ده ته شیدې ورکول واجب نه دی لِمَا بَيَّنَّا ځکه مونږ بیان کړی دی. أَنَّ الْكِفَايَةَ عَلَى الْأَبِ چې کفایت په پلار باندې واجب دې وَأُجْرَةُ الرَّضَاعِ كَالنَّفَقَةِ اود پیو څښلو اجرت د نفقې پشان دې وَلِأَنَّهَا عَسَاهَا او ځکه کیدای شی لَا تَقْدِرُ عَلَيْهِ لِعُذْرٍ بِهَا چې ددې مور د څه عذر په وجه په پیو ور کاوه باندې قادر نه وی فَلَا مَعْنَى لِلْجَبْرِ عَلَيْهِ نو (دا مور) په پیو ور کاوه باندې مجبوره کول هیڅ معنی نه لری وَقِيلَ فِي تَأْوِيلِ قَوْلِهِ تَعَالَى {لَا تُضَارَّ وَالِدَةٌ بِوَلَدِهَا}

اود الله تعالى قول ((لَا تُضَارَّ وَالِدَةٌ بِوَلَدِهَا)) په تفسير كي ونيلى شوى دى بِإِلْزَامِهَا الْإِرْضَاعَ چه په دې به شيدې وركول نشى لازمولې مَعَ كَرَاهَتِهَا چې دا كار په دې باندې مشكل وى وَهَذَا الَّذِي ذَكَرْنَا بَيَانُ الْحُكْمِ اودا څه چې منونږ بيان كړل د حكم بيان دې وَذَلِكَ إِذَا اودا هم هغه وخت پورې دى كَانَ يُوجَدُ مَنْ تُرْضِعُهُ چې بچى ته شيدې وركونكې داينږه ملاوېږى نشى أَمَّا إِذَا كَانَ لَا تُوجَدُ مَنْ تُرْضِعُهُ بهرحال كله چې شيدې وركونكې ښځه نه ملاوېږى تُجْبَرُ الْأُمُّ عَلَى الْإِرْضَاعِ نو دده په مور به د پيو ور كاوه لپاره زبردستى كولاى شى صِيَانَةً لِلصَّبِيِّ عَنِ الضَّيَاعِ چې ماشوم د ضائع كيدو نه بچ شى.

**حل اللغة**① **رضيع**: تې رودونكې ماشوم ② **الجبر** زبردستى ③ **الارضاع**: تئ وركول ④ **صيانة**: حفاظت]

**تشريح**:- مسئله: كه صغير شيدې څكونكې بچې وى. نو قضاء ددې په مور باندې دې بچى ته شيدې وركول واجب نه دى. ځكه چې مونږه بيان كړى دى. چه د بچى پالنه په پلار باندې واجب ده. په دې كې بل څوك شريك نشته. اود پيو ښنلو مزدورى د نفقه پشان ده. نو لكه څنګه چې په پلار باندې د پيوڅكونكى نفقه واجب ده. دغه ډول په ده باندې دا هم واجب دى. چه دې د بچى لپاره پيو څكونكې ښځه په اجرت باندې اونيسى. نو ثابته شوه. چه د نفقه پشان د پيوښنلو اجرت هم په پلار باندې واجب دې.

② دوهم دليل دادې. چه ډيره ممكنه ده. چه د بچى مور دڅه عذر په وجه ده ته په پيو ور كاوه قادره نه وى. نودبچى مور په پيو ور كاوه باندې دمجبورولو هيڅ معنى نشته. اود الله تعالى قول ((لَا تُضَارَّ وَالِدَةٌ بِوَلَدِهَا وَلَا مَوْلُودٌ لَهُ بِوَلَدِهِ)) يعنى ،، هيڅ يوې مورته به تكليف نشى رسولې. ددې د بچى په وجه. اونه به پلار ته تكليف رسولې شى. دده د بچى په وجه،، ددې په تفسير كي ونيلى شوى دى. چه په دې به شيدې وركول نشى لازمولې. چه كله دا كار په دې باندې ګران وى. لكه چې حضرت اقدس تهانوى رحمه الله ليكلى دى. چه د بچى مورپلار به خپل مينځ كي په څه خبره باندې ضدبازى نه كوى. كه مور ته په څه وجه عذر نه وى. نو ددې په ذمه دياتناً يعنى عندالله واجب دى. چه بچى له شيدې وركړى. چه كله دا منكوحه وى. يا په عدت كي وى. او اجرت اخستل صحيح نه دى. او كه د طلاق نه روسته عدت تيرشو. نو په دې باندې د اجرت نه بغير شيدې وركول واجب نه دى. كه مور د پيو ښنلو نه انكار اوكړى. نو په دې به جبر نشى كولې. البته كه ماشوم دهيڅ يوې ښځې شيدې نه څكل. اونه نور شيدې څكى. نو مور به مجبورولې شى. دغه ډول كه مور شيدې وركول غوارې. او ددې په پيوكې څه خرابى هم نه وى. نو پلار له جائز نه دى. چه دا پيو ور كاوه ته نه پريږدى. اود بلې ښځې شيدې وركړى. اودا څه چې موږ ذكر كړل. يعنى مور په پيو ښنلو باندې نه مجبوره كول، دا د حكم قضاء بيان دې. ګنى دياتناً په مور باندې شيدې وركول واجب دى. او په مور باندې د پيوعدم وجوب هغه وخت پورې دى. چه بچى ته پيو ور كاوه والا ښځه ملاوېږى. او كه د پيو ور كاوه والاښځه نه ملاويدله. يا بچى د هيڅ يوې ښځې شيدې نه اخستل. نو ددې په مورباندې به د پيو ور كاوه لپاره جبر كولې شى. چه بچې د ضائع كيدلو نه بچ شى.

## د پيو وركولو لپاره په اجرت باندې ښځه نيول

قَالَ امام قدورى رحمه الله فرمانى وَيَسْتَأْجِرُ الْأَبُ مَنْ چې (د بچى) پلار به داسې ښځه نوكره ساتى تُرْضِعُهُ عِنْدَهَا چې هغه ددې (بچى) د مورسره (بچى) له شيدې وركړى أَمَّا اسْتِئْجَارُ الْأَبِ نود پلار نوكره ساتل، فَلِأَنَّ الْأَجْرَ عَلَيْهِ ددې لپاره دى. چه اجرت به هم په پلار باندې لازم وى. وَقَوْلُهُ عِنْدَهَا اودا چې اوونيلى شو. چه دده مور سره به (شيدې) وركوى مَعْنَاهُ نو ددې مطلب دادې إِذَا أَرَادَتْ ذَلِكَ چې كله مور داسې اوغوارى لِأَنَّ الْحَجْرَ لَهَا ځكه چې دغيرې حق د مور لپاره دې.

**حل اللغة**① **الاستيجار** په اجرت سره نيول ② **الحجر**: د غيرې حق]



**تشريح**:- مسئله داده. چه پلار به بچى ته د پيوور كاوه لپاره داسې ښځه په اجرت باندې نيسى. چه دا د بچى د مورسره اوسيږى. او بچى ته شيدې وركوى. پاتې شوه داخبره. چه شيدې وركونكې به ددې بچى پلار په اجرت باندې نيسى. ځكه چې اجرت ددې بچى په پلار باندې لازم دې. او پاتې شوه داخبره چې قدورى وانى چه شيدې وركونكې ښځه به د بچى د مور سره اوسيږى. او شيدې به وركوى. نو ددې مطلب دادې. چه كله مور داسې غوارې. نو شيدې وركونكې ښځې له به د بچى د مورسره اوسيدل لازمى وى. ځكه چې د پرورش كولوحق د مور لپاره دې.

## مور لپاره د پيو وركولو مزدورى

وَإِنِ اسْتَأْجَرَهَا لِتُرْضِعَ وَلَدَهَا اوكه ده (پلار) د بچى مور د پيو ور كاوه لپاره په اجرت باندې اونيوله وَهِيَ زَوْجَتُهُ حالانكه دا دده ښځه ده أَوْ مُعْتَدَّتُهُ يا دده معتده ده لَمْ يَجُزْ نوجائز نه دى لِأَنَّ الْإِرْضَاعَ مُسْتَحَقٌّ عَلَيْهَا دِيَانَةً ځكه چې ديانةً په دې ښځه باندې شيدې وركول واجب دى. قَالَ اللَّهُ تَعَالَى الله تعالى فرمانيلى دى {وَالْوَالِدَاتُ يُرْضِعْنَ أَوْلَادَهُنَّ} يعنى منډې دې خپلو بچو ته شيدې وركوى إِلَّا أَنَّهَا عُذِرَتْ خودا ښځه ځكه معذوره ګرځولې شوې وه لِاحْتِمَالِ عَجْزِهَا چې كيداې شى دا دپيو ور كاوه نه عاجزه وى فَإِذَا أَقْدَمَتْ عَلَيْهِ بِالْأَجْرِ خو چې كله دې په اجرت سره شيدې وركول اوغوښتل. ظَهَرَتْ قُدْرَتُهَا نو ددې (په پيو ور كاوه باندې) قادر كيدل ښكاره شو. فَكَانَ الْفِعْلُ وَاجِبًا عَلَيْهَا نو (دحكم الهى مطابق) په ده باندې فعل ارضاع (شيدې وركول) واجب شو فَلَا يَجُوزُ أَخْذُ الْأَجْرِ عَلَيْهِ نو اوس په دې كار باندې اجرت اخستل (دې دپاره) جائز نه دى وَهَذَا فِي الْمُعْتَدَّةِ عَنْ طَلَاقٍ رَجْعِيٍّ رِوَايَةً وَاحِدَةً (د اجارې عدم جواز) د مطلقه رجعيه په عدت كي په روايت واحده دى يعنى هيڅ اختلاف نشته لِأَنَّ النِّكَاحَ قَائِمٌ ځكه چې نكاح موجود ده وَكَذَا فِي الْمَبْتُوتَةِ فِي رِوَايَةٍ اوهم دا حكم په يو روايت كي د مبتوته (كومه چې قطعى طور باندې جلا كړې شوې ده) دې وَفِي رِوَايَةٍ أُخْرَى: جَازَ اسْتِئْجَارُهَا او په دوهم روايت كي دا په اجرت باندې اخستل جائز دى لِأَنَّ النِّكَاحَ قَدْ زَالَ ځكه چې نكاح زائل شوه وَجْهُ الْأُولَى اود ړومبى روايت وجه داده أَنَّهُ بَاقٍ فِي حَقِّ بَعْضِ الْأَحْكَامِ چه نكاح د بعض احكامو په حق كي پاته ده.

**تشريح**:- مسئله: كه خاوند د خپل بچى مور د پيو ور كاوه لپاره په اجرت باندې اونيوله. حالانكه دا دده ښځه ده. يعنى په نكاح كي موجود ده. يا دده د طلاق په عدت كي ده. نودا په اجرت باندې اخستل جائز نه دى. ځكه چې دياتناً په دې ښځه باندې شيدې وركول پخپله واجب دى. لكه چې د الله تعالى ارشاد دې. ((وَالْوَالِدَاتُ يُرْضِعْنَ أَوْلَادَهُنَّ)) يعنى ،، منډې دې خپلو بچو ته شيدې وركوى ،، په آيت كي ((يُرْضِعْنَ)) خبر دې. د امر په معنى كي دې. لكه څنګه چې په ((وَالْمُطَلَّقَاتُ يَتَرَبَّصْنَ بِأَنْفُسِهِنَّ ثَلَاثَةَ قُرُوءٍ)) كي خبر دې. او يَتَرَبَّصْنَ د امر په معنى كي دې. خودا دعجز د احتمال په وجه معذوره ګرځولې شوې وه. نو هركله چې دا په اجرت سره پيو ور كاوه ته وراندې شوه. نو ښكاره شوه. چه دا په پيو ور كاوه قادره ده. نود الله ﷻ د حكم موافق په دې باندې شيدې وركول واجب شو. نو په دې كار باندې به ددې لپاره اجرت اخستل جائز نه وى. اودا كوم حكم چې ذكر شو. يعنى د بچى مور په اجرت باندې ناجائز كيدل، دا د مطلقه رجعيه په حق كي متفق عليه دې. ځكه چې د طلاق رجعيه نه روسته نكاح قائم پاتې كيږى. تردې چې مطلقه رجعيه سره ددې خاوند لپاره وطى كول حلال ده. او كه د طلاق بائن په عدت كي وى. نو په دې كي دوې [دوه] روايتونه دى. په يو روايت كي دا په اجرت باندې اخستل جائز نه دى. او په دوهم روايت كي جائز دى. چه دا په اجاره باندې اونيسى. ځكه چې نكاح زائل شوه. اود ړومبى روايت وجه داده. چه د طلاق بائن نه روسته هم نكاح د بعض احكامو په حق كي پاته ده. مثلاً عدت اود ښځې لپاره د نفقه اوسكنى واجبيدل.

**بچي له په پیو ورکولو خپله ښځه په مزدوری باندي نیول**

ولو استأجرها وهي منكوحته أو معتدته اوکه ده خپله منکوحه یا معتده ددي لپاره په اجرت باندي واخستله
لإرضاع ابن له من غيرها چي دده کوم بچي د دویمي ښځي نه ( پیدا ) دي.هغه ته شیدي ورکړي جاز نودا
اجاره جائز ده لأنه غير مستحق عليها خکه چي دا شیدي ورکول په دي باندي حق واجب نه دي.

**تشریح:-** صورت د مسئلي او دلیل واضح دي.

**د نکاح زائل کیدلو نه روسته بچي ته پیو ورکولو لپاره په اجرت باندي نیول**

وإن انقضت عدتها اوکه د معتده عدت تیرشو فاستأجرها يعني لإرضاع ولدها بیا د خپل بچي لپاره کوم چي
هم ددي ښځي نه پیدا دي.په اجاره باندي مقررشوه جاز نو جائز دی .لأن النكاح قد زال بالكلية خکه چي
نکاح بالکل زائل شوه وصارت كالأجنبية او ( دا ښځه د) اجنبیه پشان شوه.

**حل اللغة:** ① الاجنبية: پردئ ② الارضاع: شیدي ورکول ]

**تشریح:-** صورت د مسئلي دادي.چه د معتده عدت تیر شو.بیا خاوند خپل بچي ته د پیو ور کاوه لپاره کوم
چي هم ددي(معتده) ښځي نه پیدا دي.دا ئې په اجرت باندي اونیوله.نودا اجاره جائز ده.دلیل دادي.چه
هرکله عدت تیرشو.نو نکاح بالکلیه زائل شوه.اودا ښځه د اجنبیه ښځو پشان شوه.نو لکه څنګه چي اجنبیه
ښځه په اجرت باندي اخستل جائز دی .دغه ډول دا هم په اجرت باندي اخستل صحیح دی .

**د پیو په ورکولوکي د بچي مورته ترجیح ورکول**

فإن قال الأب بیا که ( د بچي ) پلار اووئیل لا أستأجرها چي زه به د بچي مور په اجرت باندي نه نیسم
وجاء بغيرها ( بلکه) د بچي د مورنه علاوه ئي بل څوك شیدي ورکونکي راوستله فرضيت الأم بمثل أجر الأجنبية
بیاد اجنبیه د اجرت په مثل باندي ( د بچي ) مور راضي شوه أو رضيت بغير أجر یا د اجرت نه بغیر راضي شوه.
كانت هي أحق نوهم دا به مستحق وی

**تشریح:-** مسئله داده.که دبچي پلار اووئیل.چه زه به دده مور په اجرت باندي نه نیسم.بلکه ددي نه علاوه ئي
بل څوك په اجرت باندي راوستل.بیا چي څومره اجرت اجنبیه ښځي غوښتلو.په هم دغه اندازه اجرت باندي
یا د اجرت نه بغیر پخپله د بچي مور راضي شوه.نو په دي صورت کي به دبچي مور مستحقه وی

لأنها أشفق خکه چي دا( پخپل بچي ) باندي زیاته مهربانه ده فكان نظرا للصبي في الدفع إليها .نوهم دي ته
په سپارلو کي د بچي په حق کي زیاته بهتری ده وإن التمست زيادة اوکه د بچي مور داجنبیه ښځي د اجرت نه
زیاته غوښتله لم يجبر الزوج عليها نو خاوند به په زیات ور کاوه باندي نشي مجبوره کولي دفعا للضرر عنه چي
ددي نه ضرر لري شي

**تشریح:-** دلیل دادي.چه مور په خپل بچي باندي زیاته مهربانه وی .نو هم دي ته په سپارلوکي د بچي په حق
کي بهتری ده.او که د بچي مور د اجنبیه ښځي داجرت نه زیات غوښتلو.نو خاوند یعنی د بچي پلار به په
زیاتي باندي نشي مجبورولي.چه دده نه ضرر لري شي .

وإليه الإشارة بقوله تعالى { لا تضار والدة بولدها ولا مولود له بولده } .او هم دي اړخ ته الله تعالی ارشاد فرمائیلي«لا
تضار والدة بولدها ولا مولود له بولده» یعني مور به د خپل بچي په وجه په نقصان کي نشي اچولي اونه به د بچي
پلار دخپل بچي په وجه نقصان اوچتوی أي بإلزامه لها أكثر من أجرة الأجنبية یعنی په ده به د بچي د مور لپاره د
اجنبیه د اجرت نه زیات اجرت واجب نه وی .



**تشریح:-** او هم دي اړخ ته الله تعالی اشاره فرمائیلي ده.«(لا تضار والدة بولدها ولا مولود له بولده)» یعنی د بچي
مور لپاره د اجنبیه ښځي د اجرت نه زیاته مقررولو باندي به پلار ته تکلیف نشي رسولي.بلکه بچي به پیو
ورکونکي اجنبیه ښځي ته ورکولي شي . هغه به د بچي مور سره اوسیږي .او بچي له به شیدي ورکوی .

**په پلار باندي د صغیري د نفقه وجوب**

ونفقة الصغير واجبة على أبيه اود صغیر بچي نفقه دده په پلار باندي واجب ده وإن خالفه في دينه اګرچه پلار دده
سره په دین کي مخالف وی كما تجب نفقة الزوجة على الزوج لکه څنګه چي په خاوند باندي د ښځي نفقه
واجب ده. وإن خالفته في دينه اګرچه خاوند په دین کي مخالف وی

**تشریح:-** فرمائی .چه د صغیر نفقه دده په پلار باندي واجب ده.اګرچه پلار دده سره په دین کي مخالف وی.
مثلاً صغیر اسلام قبول کړلو.او پلار کافر دي.یا پلار مسلمان وی .او بچي مرتد شو.یاد ساتی:چه د پوهه
ماشوم اسلام او مرتد کیدل صحیح دی .دغه ډول د ښځي نفقه په خاوند باندي واجب ده.اګرچه دا په دین کي
د خاوند مخالفه وی .مثلاً یهودیه وی .یا نصرانیه وی .

أما الولد فلإطلاق ما تلونا بهرحال ولد خو ددي آیت مطلق کیدلو په وجه کوم چي مونږ تلاوت کړو یعنی ﴿وعلى
المولود له رزقهن﴾ . ولأنه جزؤه او په دي وجه هم چي بچي د پلار جزء دي فيكون في معنى نفسه نو د خپل ذات په
معنی کي به وی

**تشریح:-** د بچي په نفقه واجبیدلو باندي دلیل هغه آیت دي.کوم چي مونږ وړاندي تلاوت کړلو.یعنی ﴿وعلى
المولود له رزقهن﴾.دا آیت د ښځو په نفقه کي عبارة النص دي.او د اولاد د نفقه په اړه کي دلالة النص دي.لکه
وړاندي بیان شو.او چونکه آیت مطلق دي.په دي وجه مطلقاً د صغیر نفقه دده په پلار باندي واجب ده.که د
دواړو دین یو وی .او که مختلف وی . او دوهم دلیل دادي.چه بچي د خپل پلار جزء وی .نودا به د خپل ذات
په حکم کي وی .اوچونکه د خپل ذات نفقه فرض وی .په دي وجه به د خپل جزء یعنی د اولاد نفقه به هم
فرض وی

وأما الزوجة او پاتي شوه ښځه فلأن السبب هو العقد الصحيح نو (ددي نفقه) خکه (واجب ده) چي د ( نفقي) سبب
عقد صحیح دي فإنه بإزاء الاحتباس خکه چي نفقه دهغه احتباس په مقابله کي ده الثابت به کوم احتباس چي
ددي نکاح په وجه ثابت دي وقد صح العقد بين المسلم والكافرة اود مسلمان سړی اود کافري (کتابیه) ښځي په
مینځ کي عقدنکاح صحیح دي وترتب عليه الاحتباس او احتباس ( ځان د خاوند په کورکي قیدکول) په دي
باندي مرتب کیږي فوجبت النفقة نو نفقه به هم واجب وی

**تشریح:-** .او پاتي شوه د ښځي نفقه نو ددي دلیل دادي.چه د ښځي د نفقه سبب نکاح صحیح ده.خکه چي د
نکاح په وجه ښځه خپل ځان د خاوند لپاره پابند کوی .او ددي په مقابله کي نفقه واجب وی .اودا خبره
ښکاره ده.چه د کتابیه کافري اود مسلمان سړی په مینځ کي نکاح صحیح وی .لکه چي د الله تعالی قول
«والمحصنات من المؤمنات والمحصنات من الذين أوتوا الكتاب» دي.نوهرکله چي ددي دواړو په مینځ کي نکاح صحیح
شوه.نو په دي نکاح به احتباس ( بندول) مرتب کیږي .او هرکله چي په دي نکاح باندي احتباس مرتب شو.نو
په خاوند به نفقه هم واجب وی .

وفي جميع ما ذكرنا إنما تجب النفقة على الأب او په ذکرشوی ټولو صورتونو کي په پلار باندي ( د صغیر) نفقه هغه
وخت واجب وی . إذا لم يكن للصغير مال چي دصغیر بچي ذاتي کوم مال نه وی أما إذا كان اوکه د بچي څه
مال وی فالأصل نو اصل دادی . أن نفقة الإنسان في مال نفسه چي د سړي نفقه پخپل مال کي وی صغيرا
كان ( که) صغیر وی أو كبيرا او که کبیر وی .

تشریح:- واضحه دي وي .چه څومره صورتونه موږ ذکر کړل.په ټولوصورتونوکي په پلار باندې د اولاد نفقه هغه وخت واجب وي .چه کله صغیر سره ده څه ذاتي مال نه وي .او که د صغیر بچی سره دده څه ذاتي مال وي .نو دده نفقه به ددې مال نه پوره کولې شی .ځکه اصل دادی .چه دسړی نفقه پخپل مال کې وي .که دې صغیر وي .او که کبیر وي .

د صغیر لپاره د مال کیدلو صورت دادی.چه ده دچانه میراث حاصل کړې وي .یا ده ته چا هبه ورکړې وي .او که د صغیر سره مځکه ، یا کپړې، یا څاروی وغیره وي .او دده د نفقه لپاره ددې ارتیا پیداشی .نو پلار به متولی وي .چه دا واړه خرڅ کړی .او دده په نفقه کې ئې خرچ کړی . (عینی شرح هدایه)

## د مور پلار اوه نیا.او نیکه د نفقه احکام

فَصْلٌ: وَعَلَى الرَّجُلِ په سړی باندې واجب دی أَنْ يُنْفِقَ عَلَى أَبَوَيْهِ وَأَجْدَادِهِ وَجَدَّاتِهِ چې خپل مورپلار ،نیکونو او نیاګانو ته نفقه ورکړی إِذَا كَانُوا فُقَرَاءَ که دوی محتاج وی وَإِنْ خَالَفُوهُ فِي دِينِهِ اګرچه په دین کې ددوی مخالف وی

حل اللغة: ① معروف:ښه سلوك ② یعیش: ژوند تیروی ③ جوع: لوږه ④ احیاء: ژوندی کول ⑤ ایجاب: واجبول]

تشریح:- د اولاد نفقه نه د فارغ کیدلو نه روسته په دې تفصیل کې د مورپلار ،او(د پلار د اړخه ) د انا نیکه، نفقه ده.کله چې دوی محتاجه وی .اګرچه په دین کې دده نه مخالف وي .

أَمَّا الْأَبَوَانِ بهرحال د مورپلار ( په نفقه کې ) دلیل فَلِقَوْلِهِ تَعَالَى {وَصَاحِبْهُمَا فِي الدُّنْيَا مَعْرُوفًا} د الله تعالی قول دې.((وَصَاحِبْهُمَا فِي الدُّنْيَا مَعْرُوفًا)) یعنی په دنیاکې مورپلار سره په اعتدال سره اوسیږئ» نَزَلَتِ الْآيَةُ فِي الْأَبَوَيْنِ الْكَافِرَيْنِ دا آیت د کافر مورپلار په حق کې نازل شوې دې ،وَلَيْسَ مِنَ الْمَعْرُوفِ او معروف ( په اعتدال سره اوسیدل) دا نه دی أَنْ يَعِيشَ فِي نِعَمِ اللَّهِ تَعَالَى چې پخپله د الله تعالی په نعمتونوکې عیش کوی وَيَتْرُكَهُمَا يَمُوتَانِ جُوعًا او مورپلار پریږدی .چه د اولږې مړه شی

تشریح:- د مورپلار په نفقه کې دلیل د الله تعالی قول [وَإِنْ جَاهَدَاكَ عَلَى أَنْ تُشْرِكَ بِي مَا لَيْسَ لَكَ بِهِ عِلْمٌ فَلَا تُطِعْهُمَا وَصَاحِبْهُمَا فِي الدُّنْيَا مَعْرُوفًا وَاتَّبِعْ سَبِيلَ مَنْ أَنَابَ إِلَيَّ ثُمَّ إِلَيَّ مَرْجِعُكُمْ فَأُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ] دې.یعنی که دوی دواړه په تا باندې ددې خبرې زور راوړی .چه ماسره داسې شی شریك جوړ کړه.چه دهغې تاسره څه دلیل نه وی .نو ددوی خبره مه منه.او په دنیاکې ددوی سره ښه وخت تیره وه.اود هغه کس په لاره روان اوسه.څوك چې ما اړخ ته رجوع کوی . (سورة لقمان) دا آیت:د سعدبن ابی وقاص په اړه کې نازل شوې دې.دا پخپله مسلمان شوې وو.او دده مور جمیله کافره وه.او د سعد د اسلام راوړلو په وجه خوراك څکاك هم پریښولې (پریخودې) وو.نو حضرت سعد ؓ د نبی کریم ﷺ په خدمت کې حاضرشو.نودا آیت نازل شو.ددې حاصل دادې.چه د دین په معامله کې ددوی اطاعت مه کوه.البته په دنیاوی معاملاتوکې ددوی سره په معروف طریقه (رواج مطابق) چلیږه.په معروف طریقه اوسیدل دا نه دی .چه په خپله خو د الله تعالی په نعمتونوکې عیش (مزې) کوی او مورپلار پریږدی .چه دوی د اولګې مړه شی .ددې آیت نه ښکاره شوه.که مورپلار محتاج وی .نو په خوی باندې ددوی نفقه واجب ده.اګرچه په دین کې د دواړو اختلاف ولې نه وی .

نوټ: یاد ساتئ چې د آیت ( وَصَاحِبْهُمَا فِي الدُّنْيَا مَعْرُوفًا ) مصداق غیرحربی مورپلار دی .او که مورپلار حربی وی .نو ددې تفصیل روستو راروان دی

وَأَمَّا الْأَجْدَادُ وَالْجَدَّاتُ اود نیکونو او نیاګانو دلیل دادې فَلِأَنَّهُمْ مِنَ الْآبَاءِ وَالْأُمَّهَاتِ چې دوی هم د پلارانو او میاندو څنې دی وَلِهَذَا يَقُومُ الْجَدُّ مَقَامَ الْأَبِ عِنْدَ عَدَمِهِ اوهم په دې وجه د پلار په عدم موجودګئ کې نیکه ( د پلار پلار) د پلار قائم مقام وی وَلِأَنَّهُمْ سَبَّبُوا لِإِحْيَائِهِ او په دې وجه هم چې دې هم د سړی د ژوندی کیدو سبب دې



فَاسْتَوْجَبُوا عَلَيْهِ الْإِحْيَاءَ نو دوی په دې سړی باندې دخپل ژوند استحقاق لری بِمَنْزِلَةِ الْأَبَوَيْنِ لکه څنګه چې په مورپلار کې دی

تشریح:- د مورپلار نه علاوه (د پلار د اړخه ) انا نیکه لپاره د نفقه دوجوب دلیل دادې.چه دوی هم د پلارانو او میاندوخنې دی .هم دا وجه ده.که پلار نه وی .نو نیکه دده قائم مقام وی . دوهم دلیل دادې چه انا اونیکه هم د سړی د ژوندی اوسیدلو سبب دی .نو هم په دې سړی باندې د خپل ژوند استحقاق لری .لکه څنګه چې په مورپلار کې دی .

وَشَرَطَ الْفَقْرَ اود محتاج شرط ئې په دې وجه لګولې دې لِأَنَّهُ لَوْ كَانَ ذَا مَالٍ که پلار توانګر وی فَإِيجَابُ نَفَقَتِهِ فِي مَالِهِ أَوْلَى نودده نفقه پخپل مال کې واجبیدل غوره دی مِنْ إِيجَابِهَا فِي مَالِ غَيْرِهِ په نسبت د مال غیر ولَا يَمْتَنِعُ ذَلِكَ بِاخْتِلَافِ الدِّينِ او اختلاف د دین د نفقې د وجوب نه مانع نه جوړیږی لِمَا تَلَوْنَا د هغه آیت په وجه ګوم چې موږ تلاوت کړو

تشریح:- د محتاجه کیدلو شرط ئې په دې وجه لګولې دې.چه پلار که مالداره وی .نو دده نفقه په خپل مال کې واجبیدل غوره دی .په نسبت سره دغیر په مال کې د واجبیدلو نه.نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی .﴿ كل من كد يمينك وعروق جنبك ﴾ یعنی د خپل لاس اود وینې خولې په محنت سره خوره.

او باقي شو د دین اختلاف،نودا د نفقه واجبیدلو نه مانع نه جوړیږی .دلیل آیت [وَصَاحِبْهُمَا فِي الدُّنْيَا مَعْرُوفًا] دې.دا آیت دلالت کوی .چه مورپلار که مؤمن وی .او که کافر وی .دوی سره د اعتدال سلوك کوئ. امام مالك او امام شافعی رحمهما الله هم ددې قائل دی .

## په دینی اختلاف سره د نفقه عدم وجوب

وَلَا تَجِبُ النَّفَقَةُ مَعَ اخْتِلَافِ الدِّينِ او په دینی اختلاف سره دچا نفقه نه واجبیږی إِلَّا لِلزَّوْجَةِ وَالْأَبَوَيْنِ وَالْأَجْدَادِ وَالْجَدَّاتِ وَالْوَلَدِ وَوَلَدِ الْوَلَدِ سوا د ښځې نه.اود مورپلار، نیکونو، نیاګانو،او ځامن، او نمسو نه،

تشریح:- مسئله داده.چه د دینی اختلاف په موجودګئ کې د هیڅ چا نفقه نه واجبیږی .سوا د ښځې ،د مور پلار،او (د پلار د اړخه ) د انا نیکه،اود ځوی اود نمسی .

أَمَّا الزَّوْجَةُ او بهرحال د ښځې ( نفقه) په هغه دلیل کې واجب شوې ده فَلِمَا ذَكَرْنَا کوم چې موږ ذکرکړې دې أَنَّهَا وَاجِبَةٌ لَهَا بِالْعَقْدِ لِاحْتِبَاسِهَا لِحَقٍّ لَهُ مَقْصُودٍ ځکه چې ښځې خپل ځان د خاوند د حق مقصود په وجه محبوس کړې دې. وَهَذَا لَا يَتَعَلَّقُ بِاتِّحَادِ الْمِلَّةِ اودا د دین مختلف کیدو سره نه متعلق کیږی .

تشریح:- د دینی اختلاف باوجود د ښځې نفقه ددې په خاوند باندې په دې وجه واجب ده.چه د ښځې لپاره نفقه د نکاح د عقد په وجه واجبیږی .ځکه چې ښځې خپل ځان د خاوند مقصودی حق یعنی د وطی وغیره لپاره محبوس ساتلې دې.او په دې کې د زوجینو دینی اعتبار سره د متحد کیدلو هیڅ دخل نشته.

وَأَمَّا غَيْرُهَا اود ښځې نه علاوه فَلِأَنَّ الْجُزْئِيَّةَ ثَابِتَةٌ ځکه چې جزء کیدل ثابت دی وَجُزْءُ الْمَرْءِ فِي مَعْنَى نَفْسِهِ اود سړی جزء دده د ذات په معنی کې وی فَكَمَا لَا يَمْتَنِعُ نَفَقَةُ نَفْسِهِ لِكُفْرِهِ نو لکه څنګه چې سړې خپله نفقه د خپل کفر په وجه نه منع کوی لَا يَمْتَنِعُ نَفَقَةُ جُزْئِهِ هم دغه ډول د خپل جزء نفقه هم نشی منع بندولې

تشریح:- د ښځې نه علاوه د پاته خلګو نفقه په دې وجه لازم ده.چه جزءیت ثابت دې.د ولد جزء کیدل خو ښکاره دی .او ددې نه علاوه د مورپلار ،او انا نیکونو وغیره (جزئیت) ځکه دې.چه دوی ته د اولاد رشته ګډ ده.بهرحال په دې ټولوکې د جزئیت معنی موجود ده.اود سړی جزء دده د ذات په حکم کې وی .نو لکه څنګه

چې سرې دخپل ذات نفقه د خپل كفر په وجه نه منع كوي .نوهم دغه ډول دچا سره چې دده دجزءيت علاقه وي .دهغوي نفقه هم نشي بندولې.

إِلَّا أَنَّهُمْ إِذَا كَانُوا حَرْبِيِّينَ خوچه كله دوي حربي وي لَا تَجِبُ نَفَقَتُهُمْ عَلَى الْمُسْلِمِ نو ددوي نفقه په مسلمان باندې نه واجبيږي وَإِنْ كَانُوا مُسْتَأْمَنِينَ اګرچه دې خلګو امان اخستې وي او په دارالاسلام كې راغلي وي لِأَنَّا نُهِينَا عَنِ الْبِرِّ فِي حَقِّ مَنْ خكه چې موږ ته ددوي سره د احسان كاوه نه ممانعت شوې دې يُقَاتِلُنَا فِي الدِّينِ څوك چې موږ سره د دين په اړه كې جنګ كوي .

تشريح:- كه دوي محتاج وي .نوددوي نفقه به واجب وي اګرچه دې خلګو امان اخستې وي .او په داراسلام كې داخل شوې وي .خكه چې څوك موږ سره د دين په اړه كې جنګ كوي .كه هرڅوك وي .موږ ددوي سره د احسان كاوه نه منع شوي يو.ارشاد دې [فَقَاتِلُوا الَّتِي تَبْغِي حَتَّى تَفِيءَ إِلَى أَمْرِ اللَّهِ ۚ فَإِنْ فَاءَتْ فَأَصْلِحُوا بَيْنَهُمَا بِالْعَدْلِ وَأَقْسِطُوا ۖ إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْمُقْسِطِينَ ۝ إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ إِخْوَةٌ فَأَصْلِحُوا بَيْنَ أَخَوَيْكُمْ ۚ وَاتَّقُوا اللَّهَ لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ ۝ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا يَسْخَرْ قَوْمٌ مِنْ قَوْمٍ عَسَىٰ أَنْ يَكُونُوا خَيْرًا مِنْهُمْ وَلَا نِسَاءٌ مِنْ نِسَاءٍ عَسَىٰ أَنْ يَكُنَّ خَيْرًا مِنْهُنَّ ۖ وَلَا تَلْمِزُوا أَنْفُسَكُمْ وَلَا تَنَابَزُوا بِالْأَلْقَابِ ۖ بِئْسَ الِاسْمُ الْفُسُوقُ بَعْدَ الْإِيمَانِ ۚ وَمَنْ لَمْ يَتُبْ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الظَّالِمُونَ ۝] د آيت ژباړه په رومبئ مسئله كې تيره شوې ده.هلته كې ئې اوګورئ.حاصل داچه ددې خلګو نفقه كه كافر وي .نو په مسلمان به هغه وخت واجب وي .چه دا خلګ په داراسلام كې مطيع وي .ګني واجب نه ده.

## په نصراني باندې د مسلمان رور د نفقې عدم وجوب

وَلَا تَجِبُ عَلَى النَّصْرَانِيِّ نَفَقَةُ أَخِيهِ الْمُسْلِمِ او په نصراني باندې د خپل مسلمان رور نفقه وركول واجب نه دي وَكَذَا لَا تَجِبُ عَلَى الْمُسْلِمِ نَفَقَةُ أَخِيهِ النَّصْرَانِيِّ وهم دغه ډول مسلمان له خپل نصراني رور ته نفقه وركول واجب نه دي . لِأَنَّ النَّفَقَةَ مُتَعَلِّقَةٌ بِالْإِرْثِ بِالنَّصِّ خكه چې په نص سره د نفقې تعلق ميراث سره دې

حل اللغة:① القرابة: خپلولي ② المحرمية: حراموالې ③ الصلة: صله رحمي ④ دوام: هميشوالې ⑤ الاعلى: پورته،اوچت ⑥ الادنى: معمولي ⑦ القطيعة: كټ كول]

تشريح:- مسئله داده.چه په نصراني باندې واجب نه دي .چه خپل نسبي رور (چه مسلمان شوې دې) نفقه وركړي .اوهم دغه ډول په مسلمان باندې واجب نه دي .چه خپل نصراني رور ته نفقه وركړي .دليل دادې.چه په د قرآن په نص ﴿وَعَلَى الْوَارِثِ مِثْلُ ذَٰلِكَ﴾ سره ثابته ده.چه د نفقه تعلق د ميراث سره دې.يعنى په چاكي چې خپلو كې ميراث جاري كيږي .په دوي كې به نفقه هم وي .اوچونكه د مسلمان او ذمي په مينځ كې ميراث نه جاري كيږي .نو په دوي كې به د يوكس په بل باندې نفقه هم واجب نه وي .

بِخِلَافِ الْعِتْقِ عِنْدَ الْمِلْكِ په خلاف د مالك كيدلو په وخت د آزاديدلو لِأَنَّهُ مُتَعَلِّقٌ بِالْقَرَابَةِ وَالْمَحْرَمِيَّةِ خكه چې آزادي د قرابت او محرميت سره متعلق ده بِالْحَدِيثِ .دحديث په وجه

تشريح:- ددې په خلاف كه مسلمان خپل نصراني رور واخستلو.نودا به په ده باندې آزاديږي .خكه چې د آزاديدلو تعلق د قرابت او محرميت سره دې.خكه چې نبي كريمﷺ فرمانيلي دي .﴿من ملك ذارحم محرم من عتق عليه﴾ يعنى ،،كوم كس چې دخپل ذي رحم محرم مالك شو،هغه په ده باندې آزاديږي ،، نو هركله چې دلته كې قرابت اومحرميت موجود شو.نودا به آزاديږي .

وَلِأَنَّ الْقَرَابَةَ مُوجِبَةٌ لِلصِّلَةِ او خكه چې قرابت صله رحمي واجبوي وَمَعَ الِاتِّفَاقِ فِي الدِّينِ آكَدُ او په دين كې د متفق كيدلو په وجه موكد كيږي وَدَوَامُ مِلْكِ الْيَمِينِ أَعْلَى فِي الْقَطِيعَةِ مِنْ حِرْمَانِ النَّفَقَةِ .او په ملك يمين باندې د قطع رحمئ په هميشوالى كې دنفقې د حرمان نه زيات دې فَاعْتَبَرْنَا فِي الْأَعْلَى أَصْلَ الْعِلَّةِ نو موږ په اعلى



كې د اصل علت اعتبار اوكړو وَفِي الْأَدْنَى الْعِلَّةَ الْمُؤَكَّدَةَ او په ادنى كې مو د علت مؤكده اعتبار اوكړو فَلِهَذَا افْتَرَقَا نو په دې وجه دواړوكې توپير اوشو

تشريح:- دوهم دليل دادې.چه قرابت په ذي رحم محرم باندې احسان كول واجبوي .او واجب چې په دين كې متفق وي .يعنى دواړه مسلمانان وي .نودا مؤكد كيږي .او څوك قرابتي هميشه په خپل ملك كې ساتل، په دې كې قطع رحمي زياته ده.په نسبت ددې چې د نفقه نه ئې محروم كړي .نو موږ په اعلى يعنى په قرابت دار مملوك ساتلوكې د اصل علت اعتبار اوكړلو.يعنى محض ددې اعتبار مو اوكړلو.كه څوك د خپل قرابت دار مالك شو.نو مملوك به په ده باندې آزاد وي .كه په دين كې متحد وي .او كه متحد نه وي .او په ادنى يعنى په نفقه كې مو د علت مؤكده اعتبار اوكړلو.يعنى ،،قرابت مع اتحاد فى الملت،، اعتبار مو اوكړلو.يعنى نفقه به هغه وخت واجب وي .چه كله د قرابت سره په دين كې هم دواړه متحد وي .نو چونكه د نفقه نه په محرومولوكې قطع رحمي كمه ده.په نسبتِ د خپل قرابتي په مملوك جوړولوكې .په دې وجه په آزادئ اود نفقه په وجوب كې توپير اوشو.

## په غريب مورپلار باندې د مالداره اولاد نفقه

وَلَا يُشَارِكُ الْوَلَدَ فِي نَفَقَةِ أَبَوَيْهِ أَحَدٌ اود مورپلار په نفقه كې به څوى سره هيڅ څوك نه شريكيږي لِأَنَّ لَهُمَا تَأْوِيلًا فِي مَالِ الْوَلَدِ بِالنَّصِّ(١) خكه چې د مورپلار لپاره دخپل بچي په مال كې يو تاويل دې وَلَا تَأْوِيلَ لَهُمَا فِي مَالِ غَيْرِهِ اود غير په مال كې ددوى لپاره هيڅ تاويل نشته

حل اللغة:① الذكور: جمع د مذكر،نارينه ② الاناث: جمع د مونث: زنانه ③ يشمل: شامليږي ]

تشريح:- مسئله داده.كه مورپلار غريبانان وي .او ددوي بچي مالداره وي .نوددوي نفقه به خاصكر هم په ده باندې واجب وي .ده سره به په نفقه وركولوكې بل څوك شريك نه وي .خكه چې مورپلار د بچي په مال كې د حديث ﴿أنت و مالك لأبيك﴾ په وجه تاويل كولې شي .اود غير په مال كې تاويل نشي كولې.نودا دواړه به دخپل خوى د مال په وجه مالداره شمارلې شي .اود توانګر نفقه په غير باندې واجب نه وي .نو ددوي دواړو په نفقه كې به غيرولد شريك نه وي .

وَلِأَنَّهُ أَقْرَبُ النَّاسِ إِلَيْهِمَا او په دې وجه چې مورپلار اړخ ته په خلګو كې ولد دټولو نه زيات قريب دې. فَكَانَ أَوْلَى بِاسْتِحْقَاقِ نَفَقَتِهِمَا عَلَيْهِ نو ددې دواړو د نفقې استحقاق به په دوي باندې اولى وي

تشريح:- دوهم دليل دادې.چه نفقه يوه عطيه ده.چه دا د قرابت په وجه واجبيږي .نوڅوك چې مورپلار ته زيات نژدې وي .هم دې به د نفقه وركاوه زيات مستحق وي .او چونكه بچې خپل مورپلار ته زيات نژدې وي .په نسبت سره د نورو خلګ و،په دې وجه به د مورپلار نفقه صرف هم په ده باندې واجب وي .

وَهِيَ عَلَى الذُّكُورِ وَالْإِنَاثِ بِالسَّوِيَّةِ فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ بيا په ظاهرالرواية كې د مورپلار د نفقې استحقاق په هلكانو اوجينكو باندې برابر دې وَهُوَ الصَّحِيحُ اوهم دا صحيح ده. لِأَنَّ الْمَعْنَى يَشْمَلُهُمَا خكه چې سبب دې دواړو ته برابر ګډ دې.

تشريح:- د مورپلار په نفقه كې انجلى او هلك دواړه برابر دى .داحكم د ظاهرالرواية دې.اوهم دا صحيح ده.تردې كه پلار محتاج وي .او دده يو هلك او يوه انجلى ( يعنى لور او خوې) مالداره وي .نو په دې دواړو باندې به نفقه نيمه نيمه ( برابر) واجب وي .خكه چې د نفقه د وجوب سبب، يعنى ولادت دواړو ته يوشان (برابر) ګډ دې.ددې په خلاف كه د يومحتاج سړي يو رور او خور مالداره وي .نو په دوي به دده نفقه اثلاثاً

١) يشيرالى حديث أنت ومالک لأبيک وسيأتى تخريجه فى الحدود)_

واجب وی .یعنی په درې حصوکي به دوې [دوه] برخې په رور باندې او یوه برخه به په خورباندې واجب وی .لکه څنګه چې په میراث کې په دریو حصوکي دوې [دوه] برخې رور ته او یوه برخه خور ته ملاویږی .ځکه چې په دې صورت کې د نفقه د وجوب سبب میراث دې.[؟]

## د ذی رحم محرم لپاره د نفقه وجوب

وَالنَّفَقَةُ لِكُلِّ ذِي رَحِمٍ مَحْرَمٍ او نفقه د هرذی رحم محرم لپاره واجبیږی إِذَا كَانَ صَغِيرًا فَقِيرًا چې دوی صغیر محتاج وی أَوْ كَانَتْ امْرَأَةً بَالِغَةً فَقِيرَةً یا ښځه بالغه محتاجه وی . أَوْ كَانَ ذَكَرًا بَالِغًا فَقِيرًا زَمِنًا یا سړې بالغ محتاج شل أَوْ أَعْمَى یا ړوند وی

[حل اللغة: ① زمن: شل ② الاعمی: ړوند ③ القرابة: خپلولی ]

تشریح:- مسئله داده.چه ذی رحم محرم که نا بالغه محتاج وی .یا ښځه بالغه محتاجه وی .یا سړې بالغ محتاج،ګډشل یا ړوند وی .نو ددوی لپاره نفقه واجبیږی .ذی رحم محرم هغه دې.چه دده سره ،،علی التابید،نکاح حرام وی .اود ذی رحم محرم قید په دې وجه لګولې شوې دې.که رحم اوموندې شی .او محرم اونه موندې شی .لکه د اکا خوې، یا محرم وی .او رحم نه وی .لکه رضاعی رور یا خور.یا رحم او محرم دواړه اوموندې شی .خود قرابت نه بغیر وی .لکه د اکا خوې،چه رضاعی رور هم وی .نو ددوی لپاره به نفقه واجب نه وی .بهرحال ذی رحم محرم که نابالغه محتاج وی .یا ښځه بالغه محتاجه وی .یا سړې بالغ محتاج، شل یا ړوند وی .

لِأَنَّ الصِّلَةَ فِي الْقَرَابَةِ الْقَرِيبَةِ وَاجِبَةٌ ځکه چې احسان کول په قرابت قریبه کې واجبیږی دُونَ الْبَعِيدَةِ .نه په بعیده کې وَالْفَاصِلُ أَنْ يَكُونَ ذَا رَحِمٍ مَحْرَمٍ او فاصل ذی رحم محرم وی وَقَدْ قَالَ اللّٰهُ تَعَالٰى {وَعَلَى الْوَارِثِ مِثْلُ ذٰلِكَ} او الله تعالی فرمائیلی دی ((وَعَلَى الْوَارِثِ مِثْلُ ذٰلِكَ)) وَفِي قِرَاءَةِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُودٍ رضي الله عنه اود عبدالله بن مسعود رضی الله عنهما په قراءت کې دی ﴿وَعَلَى الْوَارِثِ ذِي الرَّحِمِ الْمَحْرَمِ مِثْلُ ذٰلِكَ﴾. ﴿وعلی الوارث ذی الرحم المحرم مثل ذالك

تشریح:- ددوی لپاره د نفقه د وجوب دلیل دادې.چه احسان کول په قرابت قریبه کې واجبیږی .او په قرابت بعیده کې نه واجبیږی .الله تعالی فرمائی ((وَعَلَى الْوَارِثِ مِثْلُ ذٰلِكَ )) یعنی په وارث باندې ددې مثل واجبیږی .اود عبدالله بن مسعود رضی الله عنهما په قرات کې دی .﴿وعلی الوارث ذی الرحم المحرم مثل ذالك﴾ یعنی ،،په هر داسې وارث باندې چې دده رشته دائمی حرام شوې وی .ددې مثل واجب دې،، اوپه قرابت قریبه او بعیده کې فاصل دادې.که ذی رحم محرم وی .نو قرابت قریبه دې.اوکه دا نه وی .نو قرابت بعیده دې.

ثُمَّ لَا بُدَّ مِنَ الْحَاجَةِ بیا محتاج کیدل ضروری دی وَالصِّغَرُ وَالْأُنُوثَةُ وَالزَّمَانَةُ وَالْعَمٰى او نابالغ کیدل،ښځه کیدل، شل او ړوند کیدل أَمَارَةُ الْحَاجَةِ د محتاج کیدلو علامت دې لِتَحَقُّقِ الْعَجْزِ ځکه چې عجز متحقق دې. فَإِنَّ الْقَادِرَ عَلَى الْكَسْبِ .ځکه چې کوم کس په ګټه کولو( مزدوری ) کاوه باندې قادر دې غَنِيٌّ بِكَسْبِهِ دې دخپلې ګټې په وجه توانګر وی

تشریح:- د نفقه د وجوب لپاره محتاج کیدل ضروری دی .یعنی د نفقه د وجوب لپاره محتاج کیدل شرط دی .او نابالغ کیدل، یا ښځه کیدل، یا ګډشل کیدل یا نابینا (ړوند) کیدل،د محتاج کیدلو دلیل دې.ځکه چې په دې صورتونوکې د کمائی (مزدورئ) نه عاجزه کیدل متحقق کیږی .ځکه چې کوم کس مزدوری کولې شی .هغه د خپلې مزدورئ په وجه محتاجه نشی کیدلې.بلکه غنی وی .

بِخِلَافِ الْأَبَوَيْنِ په خلاف د مورپلار لِأَنَّهُ يَلْحَقُهُمَا تَعَبُ الْكَسْبِ ځکه چې په مزدورئ کاوه سره به مشقت لاحق کیږی وَالْوَلَدُ مَأْمُورٌ بِدَفْعِ الضَّرَرِ عَنْهُمَا حالانکه خوی ته ددې دواړو نه د ضررلرې کولوحکم ورکړې شوې دې فَتَجِبُ



نَفَقَتُهُمَا مَعَ قُدْرَتِهِمَا عَلَى الْكَسْبِ نو ددې دواړو په مزدورئ باندې د قادرکیدلو باوجود ددې دواړو نفقه به ( په اولاد باندې) واجب وی .

تشریح:- ددې په خلاف مورپلار دی .که دوی مزدوری کولې شی .بیا هم ددوی نفقه په اولاد باندې واجب وی .دلیل دادې.چه په مزدوری کولوسره به په مورپلار ته مشقت (تکلیف) رسیږی .حالانکه اولاد ته حکم ورکړې شوې دې.چه د مورپلار نه ضرر لرې کړی .نو که مورپلار ته د مزدورئ توان هم وی .نو بیا هم ددوی نفقه په اولاد باندې واجب ده.

## د میراث په مقدار د نفقه وجوب

قَالَ قدوری رحمه الله فرمائی وَيَجِبُ ذٰلِكَ عَلَى مِقْدَارِ الْمِيرَاثِ چې نفقه به دمیراث په مقدار واجب وی وَيُجْبَرُ عَلَيْهِ اودې په نفقه ور کاوه باندې مجبورې کړې شوې دې

تشریح:- مسئله: نفقه د میراث په مقدار واجبیږی .یعنی خومره قدرې چې میراث ملاویږی .هم دومره قدرې به په ده باندې نفقه واجب وی .اود نفقه په دې مقدار باندې به دې مجبوره کولې شی .

لِأَنَّ التَّنْصِيصَ عَلَى الْوَارِثِ تَنْبِيهٌ ځکه چې د وارث تصریح کول تنبیه ( خبرداری) دې عَلَى اعْتِبَارِ الْمِقْدَارِ د میراث مقدار معتبر کیدلو باندې

تشریح:- دلیل دادې.چه په آیت ((وَعَلَى الْوَارِثِ مِثْلُ ذٰلِكَ)) کې وارث ته صراحت کول په دې خبره باندې خبردارې دې.چه په نفقه کې د میراث د مقدار معتبر دې.

وَلِأَنَّ الْغُرْمَ بِالْغُنْمِ او ځکه چې د حصول په اندازه سرې تاوان اوچتوی وَالْجَبْرُ لِإِيفَاءِ حَقٍّ مُسْتَحَقٍّ او زبردستی د واجب حق ادا کاوه لپاره ده.

تشریح:- دوهم دلیل دادې.چه د حاصلاتو په اندازه سرې تاوان برداشت کوی .یعنی خومره قدرې چې ده ته میراث ملاویږی .هم په دې حساب سره به بالفعل مورث ته نفقه ورکوی .او پاتې شو دده مجبوره کول،نودا ځکه دی .چه کوم حق په ده باندې واجب دې.چه هغه اداکړی .

## د بالغې انجلی اود شل هلك لپاره د نفقه مقدار

قَالَ قدوری رحمه الله فرمائی وَتَجِبُ نَفَقَةُ الْابْنَةِ الْبَالِغَةِ وَالْابْنِ الزَّمِنِ عَلَى أَبَوَيْهِ أَثْلَاثًا چې د بالغ هلك او شل هلك نفقه به په مورپلار باندې درې برخې کولای شی عَلَى الْأَبِ الثُّلُثَانِ دوې [دوه] برخې په پلار باندې وَعَلَى الْأُمِّ الثُّلُثُ اویوه برخه به په مور باندې واجب وی . لِأَنَّ الْمِيرَاثَ لَهُمَا عَلَى هٰذَا الْمِقْدَارِ ځکه چې په مورپلار باندې میراث هم په دې مقدار باندې دې

[حل اللغة: ① المونة: مشقت ② تشارك: شریکیږی ③ المعسر: غریب ④ خال: ماما ]

تشریح:- مسئله:د بالغې انجلی نفقه، اود بالغ شل هلك نفقه به ددوی په مورپلار باندې درې برخې کولې شی .دوې [دوه] برخې به پلار باندې او یوه برخه به په موریاندې واجب وی .دلیل دادې.که پلار د خپل ځی یاد لور وارث شی .نو ده ته هم په دې حساب سره میراث ملاویږی .نو په دوی به نفقه هم ددې مقدار مطابق واجبیږی .

مصنف د هدایه رحمه الله فرمائی .چه د قدوری دا ذکر کول،د امام خصاف اود حسن رحمهما الله روایت دې.امام شافعی رحمه الله هم ددې قائل دې.

قَالَ الْعَبْدُ الضَّعِيفُ مصنف رحمه الله فرمائی هٰذَا الَّذِي ذَكَرَهُ چې دا قدوری چې ذکر کړل رِوَايَةُ الْخَصَّافِ وَالْحَسَنِ رحمهما الله دا د خصاف او حسن روایت دې: وَفِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ كُلُّ النَّفَقَةِ عَلَى الْأَبِ . او په ظاهرالروایت کې پوره نفقه په

پلار باندې واجب ده لِقَوْلِهِ تَعَالىٰ { وَعَلَى الْمَوْلُودِ لَهُ رِزْقُهُنَّ وَكِسْوَتُهُنَّ } ځکه الله تعالی فرمائيلی دی ((وَعَلَى الْمَوْلُودِ لَهُ رِزْقُهُنَّ وَكِسْوَتُهُنَّ)) يعنی په پلار باندې ددې خوراکه او کپړې واجب دی وَصَارَ كَالْوَلَدِ الصَّغِيرِ او شل بالغ زوی د نابالغه بچی پشان دی

**تشریح:-** او په ظاهر الروایة کي دی .چه تول نفقه به په پلار باندې واجب وی .دظاهر الروایة دليل دادې چه الله تعالی فرمائيلی دی ((وَعَلَى الْمَوْلُودِ لَهُ رِزْقُهُنَّ وَكِسْوَتُهُنَّ)) په آيت کي د ولد نسبت پلار اړخ ته شوی دی.د ،،لام،، په واسطه باندې.او ،،لام،، دلالت کوی په اختصاص باندې.نو ثابته شوه.چه په دې نسبت سره پلار خاص دې.او نفقه هم په دې نسبت باندې موقوف ده.په دې وجه به پوره نفقه په پلار باندې واجب وی .اودا بالغ شل هلك د صغير ولد پشان شو.يعنی لکه څنګه چې د ولدصغير پوره نفقه په پلار باندې واجب وی دغه ډول به دده نفقه هم په پلار باندې واجب وی .

وَوَجْهُ الْفَرْقِ عَلَى الرِّوَايَةِ الْأُولىٰ او په ړومبی روایت باندې وجه د توپير داده أَنَّهُ اجْتَمَعَتْ لِلْأَبِ فِي الصَّغِيرِ وِلَايَةٌ وَمُؤْنَةٌ چې پلار لپاره د صغير بچی په حق کي ولايت او مؤنت دواړه جمع دی حَتّىٰ وَجَبَتْ عَلَيْهِ صَدَقَةُ فِطْرِهِ تردې چې په ده باندې د نابالغه د اړخه صدقة الفطر ورکول هم واجب دی فَاخْتَصَّ بِنَفَقَتِهِ نو پلار به صغير سره مختص وی وَلَا كَذٰلِكَ الْكَبِيرُ او بالغ داسې نه دی لِانْعِدَامِ الْوِلَايَةِ فِيهِ ځکه چې په ده باندې د پلار ولايت نشته. فَتُشَارِكُهُ الْأُمُّ نو مور به هم ددې سره شريکه وی وَفِي غَيْرِ الْوَالِدِ يُعْتَبَرُ قَدْرُ الْمِيرَاثِ اود پلار نه علاوه کي به د ميراث مقدار معتبر وی حَتّىٰ تَكُونَ نَفَقَةُ الصَّغِيرِ عَلَى الْأُمِّ وَالْجَدِّ أَثْلَاثًا تردې چې د صغير نفقه به په مور اونيکه باندې درې برخي کاوه سره واجب وی .

**تشریح:-** د امام خصاف رحمه الله د روایت مطابق د ولدصغير او ولدکبير په مينځ کي وجه د توپير داده.چه د صغير بچی په حق کي د پلار ولايت او مؤنت دواړه جمع دی .تردې چې په پلار باندې د نابالغ اولاد دا حال نه دې.ځکه چې په ده باندې پلار ته ولايت نشته.نو ده ته به په نفقه ورکولوکي مورهم د پلار سره شريکه وی .اود پلار نه په علاوه کي به بالاتفاق د ميراث د مقدار اعتبار کولې شی .که د کوم بچی پلار نه وی .بکله مور او(د پلار د اړخه )نيکه وی .نو دده نفقه به په مور اونيکه باندې درې برخي کولې شی . دوې [دوه] برخي به په نيکه باندې او يوه برخه به په مورباندې واجب وی .

وَنَفَقَةُ الْأَخِ الْمُعْسِرِ عَلَى الْأَخَوَاتِ الْمُتَفَرِّقَاتِ الْمُوسِرَاتِ أَخْمَاسًا عَلَى قَدْرِ الْمِيرَاثِ اود غريب رور نفقه به په مالداره متفرق قسمه خويندو باندې د ميراث په مقدار پنځه برخي کولوسره واجب وی غَيْرَ أَنَّ الْمُعْتَبَرَ أَهْلِيَّةُ الْإِرْثِ فِي الْجُمْلَةِ خودا چې د ميراث لياقت معتبر دې لَا إِحْرَازُهُ نه داچه ددې حاصلول

**تشریح:-** که يو رور غريب وی .او دده درې مالداره خويندې وی .چه په دوی کي يوه حقيقی خور وی .او يوه علاتی وی .او يوه اخيافی وی .نو په دوی به د رور نفقه د ميراث په اندازه پنځه برخي کولې شی .يعنی درې برخي به په حقيقی خورباندې،او يوه برخه به په علاتی باندې،او يوه برخه به په اخيافی باندې واجب وی .خو دومره خبره ضرورده.چه د پلار نه په علاوه کي د ميراث ملاويدلو لياقت کافی دې.د ميراث حاصلول ضروری نه دی .ځکه که د يومحتاج سړی مالداره ماما ،اود اکا زوی مالداره وی .نو ددې محتاج نفقه به دده په ماما باندې واجب وی .حالانکه دده ميراث به دده د اکا زوی اخلی .

فَإِنَّ الْمُعْسِرَ إِذَا كَانَ لَهُ خَالٌ وَابْنُ عَمٍّ ځکه که د يومحتاج ماما مالداره اود اکا زوی توانګر وی تَكُونُ نَفَقَتُهُ عَلَى خَالِهِ نو دده نفقه به دده په ماما باندې واجب وی وَمِيرَاثُهُ يُحْرِزُهُ ابْنُ عَمِّهِ حالانکه دده ميراث به دده د اکا زوی اخلی



**تشریح:-** دليل دادې.چه ماما ذو رحم محرم دې.تردې که دا بچې انجلی وی .نوماما له په هيڅ شان دې سره نکاح جائز نه ده.ددې په خلاف د اکا زوی دې.چه دې ذو رحم دې.خو محرم نه دې.تردې چې دده سره نکاح جائز ده.اود وجوب په ،،ذو رحم محرم،، باندې وی .په دې وجه به د نفقه وجوب په ماما باندې وی .د اکا په خوی به نه وی .

## د دين د اختلاف په وجه د ميراث بطلان او نفقه

وَلَا تَجِبُ نَفَقَتُهُمْ مَعَ اخْتِلَافِ الدِّينِ اود ذورحم محارمو نفقه په دينی اختلاف سره نه واجبيږی لِبُطْلَانِ أَهْلِيَّةِ الْإِرْثِ ځکه چې د وارث کيدلو لياقت باطل دې. وَلَا بُدَّ مِنْ اعْتِبَارِهِ حالانکه ددې اعتبار ضروری دې.

**تشریح:-** ددې باوجود که په دين کي اختلاف وی .نو نفقه به واجب نه وی .ځکه چې د دين د اختلاف په صورت کي د ميراث لياقت باطل دې.حالانکه د نفقه د وجوب لپاره ددې اعتبار ضروری دې.

## په محتاج باندې د نفقه عدم وجوب

وَلَا تَجِبُ عَلَى الْفَقِيرِ او نفقه په محتاج باندې نه واجبيږی لِأَنَّهَا تَجِبُ صِلَةً ځکه چې ددې وجوب د صله رحمی په طوردی وَهُوَ يَسْتَحِقُّهَا حالانکه محتاج پخپله ددې خبرې مستحق دې عَلَى غَيْرِهِ چې دوهم کس په ده باندې احسان اوکړی فَكَيْفَ تُسْتَحَقُّ عَلَيْهِ نو په ده به نفقه څنګه واجب وی

**حل اللغة:** ① الاقدام: وړاندې والې کول ② المصالح: جمع د مصلحت،خيګړه ③ الاعسار: تنګلاسی (غريبی) ④ اليسار: مالداری ⑤ الدائم: هميشه پاتې کيدونکې ⑥ التيسير: اسانتيا]

**تشریح:-** مسئله داده.چه دا نفقه په محتاج باندې نه واجبيږی .دليل دادې.چه نفقه د صله رحمی په طور باندې واجبيږی .حالانکه محتاجه پخپله ددې مستحق دې.چه بل څوك په ده باندې احسان اوکړی .نو په ده به نفقه څنګه واجبولې شی .

بِخِلَافِ نَفَقَةِ الزَّوْجَةِ وَوَلَدِهِ الصَّغِيرِ .په خلاف د ښځې اود صغير بچی د نفقې لِأَنَّهُ الْتَزَمَهَا بِالْإِقْدَامِ عَلَى الْعَقْدِ ځکه ده دنکاح اقدام اوکړو.نو نفقه ورکول نې پخپل ځان باندې لازم کړی دی إِذِ الْمَصَالِحُ لَا تَنْتَظِمُ دُونَهَا ځکه چې د نفقې نه بغير د مصلحتونو انتظام نه کيږی وَلَا يَعْمَلُ فِي مِثْلِهَا الْإِعْسَارُ او په داسې قسمه صورت کي د غريبی دخل نه وی

**تشریح:-** ددې په خلاف په محتاج خاوند باندې د ښځې نفقه،او په محتاج پلار باندې دده د نابالغه بچو نفقه واجب ده.دليل دادې.چه هرکله ده په نکاح کاوه باندې اقدام اوکړو.نود نفقه ور کاوه نې په خپل ځان باندې التزام اوکړلو.ځکه چې بغير د نفقه نه د نکاح مقاصد(توالد ، تناسل او معاشرت) نه حاصليږی .اود غريبی عذر په داسې صورت کي ګټور نه دې.او په محتاج پلار باندې د نابالغه بچو نفقه ځکه واجب ده.چه نابالغه اولاد د ښځې قائم مقام دی .لکه چې په حديث کي اشاره ده.نبی کريم ﷺ فرمائيلی دی .«خذی من مال أبی سفيان يكفيك وولدك بالمعروف»

ثُمَّ الْيَسَارُ مُقَدَّرٌ بِالنِّصَابِ فِيمَا رُوِيَ عَنْ أَبِي يُوسُفَ. بيا د خوشحالۍ اندازه د امام ابويوسف رحمه الله نه نقل ده.چه د نصاب په اندازه مالك وی وَعَنْ مُحَمَّدٍ رحمه الله اود امام محمد رحمه الله نه روايت دې أَنَّهُ قَدَّرَهُ چې دوی د مالدارۍ اندازه دا لګولې ده بِمَا يَفْضُلُ عَلَى نَفَقَةِ نَفْسِهِ وَعِيَالِهِ شَهْرًا چې د يو مياشت پورې دده د ذاتی خرچ او دده د عيال د خرچ نه زياتی شی أَوْ بِمَا يَفْضُلُ عَلَى ذٰلِكَ مِنْ كَسْبِهِ الدَّائِمِ كُلَّ يَوْمٍ يا کوم چې دده د هميشه ګټې نه روزانه دومره زياتی شی

**تشریح:-** صاحب دهدايه رحمه الله فرمائی .چه دلته کي د يسار او عسار(مالدارۍ او غريبی) نه مراد د امام ابويوسف رحمه الله په نيز دا دی .چه دې د نصاب مالك وی .اود امام محمد رحمه الله نه نقل دی .چه د مالداره کيدلو

انداز ه داده.چه د یومیاشت پوري دده ذاتي خرچه او دده داهل وعیال خرچې نه دده سره بچ پاتې شي .یعنی که داسې وی .نو په ده به د ،،ذو رحم محرم،، نفقه واجب وی .ګنی واجب به نه وی .اود امام محمد رحمه الله نه دوهم روایت دادې.که دده د روزانه مزدورئ نه دومره قدرې بچ کیدله.نو په ده به د ،،ذی رحم محرم،، نفقه واجب وی .ګنی واجب به نه وی .

لِأَنَّ الْمُعْتَبَرَ فِي حُقُوقِ الْعِبَادِ إِنَّمَا هُوَ الْقُدْرَةُ خکه چې د بنده ګانو حقوق کې صرف د قادرکیدلو اعتبار دې دُونَ النِّصَابِ نصاب معتبر نه دې فَإِنَّهُ لِلتَّيْسِيرِ خکه چې نصاب خود اسانئ لپاره وی وَالْفَتْوَى عَلَى الْأَوَّلِ .خو فتوی په اولنی قول ده لَكِنَّ النِّصَابَ نِصَابُ حِرْمَانِ الصَّدَقَةِ .خود نصاب نه ( هغه نصاب مراد دې) په کوم چې زکاة( اخستل) حرامیږی .

تشریح:- دامام محد دلیل دا دې چې د بنده ګانو په حقوقوکي صرف د قادر کیدلو اعتبارکولې شی .او په نصاب باندې قادرکیدلو معتبر نه دی .خکه چې نصاب خود مالدارئ لپاره دې.او فتوی په ړومبی قول ده.خود نصاب نه هغه نصاب مراد دې.چه په هغې سره زکاة اخستل حرامیږی .یعنی د چاسره چې د دوې [دوه] سوه درهمو قیمت برابر مال دده د اصلی حاجت نه زیاتی موجود وی .نو په ده به واجب وی .چه خپلو ،،ذی رحم محرم،، محتاجو ته ددوی نفقه ورکړی .

## د غائب ځوی په مال کې د مورپلار نفقه

وَإِذَا كَانَ لِلِابْنِ الْغَائِبِ مَالٌ اوکه دغائب خوی سره مال دې قُضِيَ فِيهِ بِنَفَقَةِ أَبَوَيْهِ نو په دې مال کې به د مورپلار د نفقې حکم ور کولای شی وَقَدْ بَيَّنَّا الْوَجْهَ فِيهِ او مورِ ددې وجه بیان کړې ده

تشریح:- صورت د مسئلې او دلیل دواړه ښکاره دی .

## د خپل غائب ځوی سامان خرڅه ول

وَإِذَا بَاعَ أَبُوهُ مَتَاعَهُ فِي نَفَقَتِهِ اوکه پلار د خپل غائب خوی سامان( پخپله) نفقه کې خرڅ کړو جَازَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ تَعَالَى .نود امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز جائز دی وَهَذَا اسْتِحْسَانٌ او هم دا استحسان دې وَإِنْ بَاعَ الْعَقَارَ که پلار دده مځکه خرڅه کړه لَمْ يَجُزْ نوجائز نه ده

حل اللغة* ① متاع: سامان ② العقار: مځکه ③ وفور: کاملوالي ④ محصنة: محفوظه ⑤ التصرف: واك اختیار]

تشریح:- مسئله داده.چه د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز پلار له د خپل غائب خوی سامان په خپله نفقه کې خرڅول جائز دی .اودا حکم استحساني دې.او که پلار د خپل غائب خوی مځکه یا کور(جائیداد غیر منللقو.له) خرڅ کړلو.نو جائز نه دی .

وَفِي قَوْلِهِمَا لَا يَجُوزُ ذَلِكَ كُلُّهُ اود صاحبینو رحمهما الله په قول کې په دې ټولوکي خرڅول جائز دی وَهُوَ الْقِيَاسُ .اودا قیاس دې لِأَنَّهُ لَا وِلَايَةَ لَهُ خکه چې پلار ته ( په دې) ولایت نشته. لِانْقِطَاعِهَا بِالْبُلُوغِ خکه چې ولایت ( دده) په بالغ کیدو سره منقطع شو وَلِهَذَا لَا يَمْلِكُ فِي حَالِ حَضْرَتِهِ په دې وجه د بالغ خوی په موجودګئ کې پلار د خرڅولو مالك نه دې وَلَا يَمْلِكُ الْبَيْعَ فِي دَيْنٍ لَهُ سِوَى النَّفَقَةِ اود نفقه نه سوا نې په بل هیڅ پور کې نشی خرڅولې وَكَذَا لَا تَمْلِكُ الْأُمُّ فِي النَّفَقَةِ .اوهم دغه ډول مورهم په نفقه کې دده د سامان خرڅولو اختیار نه لري

تشریح:- د صاحبینو رحمهما الله په نیز جائیداد منللقو.له اوغیرمنلقو.له هیڅ څه خرڅول جائز نه دی .او قیاس هم دادې. دلیل دادې.چه پلار ته په دې باندې ولایت نشته.خکه چې د بالغ کیدلو په وجه په ده باندې ولایت منقطع شوې دې.په دې وجه که زوې حاضر وی .نو پلار ته دخپل خوی مال خرڅولو اختیار نشته.اود نفقه نه علاوه نې د بل هیڅ قرضه لپاره نشی خرڅولې.او هم دغه ډول مورجائیداد په نفقه کې نشی خرڅولې.



وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ اود امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادې أَنَّ لِلْأَبِ وِلَايَةَ الْحِفْظِ فِي مَالِ الْغَائِبِ چې پلار ته د غائب خوی په مال کې د ساتنه ولایت حاصل دې أَلَا تَرَى آیا نه ګورئ أَنَّ لِلْوَصِيِّ ذَلِكَ چې وصی ته دا خبره حاصل ده فَالْأَبُ أَوْلَى .نو پلار ته به په درجه اولی حاصل وی لِوُفُورِ شَفَقَتِهِ، خکه چې دده شفقت زیات دې وَبَيْعُ الْمَنْقُولِ او مال منقوم خرڅول مِنْ بَابِ الْحِفْظِ د ساتنه د قبیلې خنې دې وَلَا كَذَلِكَ الْعَقَارُ اود زمکې دا حال نه دې لِأَنَّهَا مُحَصَّنَةٌ بِنَفْسِهَا خکه چې دا پخپله محفوظه وی وَبِخِلَافِ غَيْرِ الْأَبِ مِنَ الْأَقَارِبِ او په خلاف د پلار نه د علاوه د نورو اقاربو( نژدې رشته دارانو) لِأَنَّهُ لَا وِلَايَةَ لَهُمْ أَصْلًا خکه چې دوی ته هیڅ قسمه ولایت حاصل نه دې فِي التَّصَرُّفِ حَالَةَ الصِّغَرِ نه په ماشوموالی کې دتصرف اختیار وو وَلَا فِي الْحِفْظِ بَعْدَ الْكِبَرِ اونه د بالغ کیدو نه روسته د ساتنه ولایت شته

تشریح:- د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادې.چه پلار ته د غائب خوی په مال کې د ساتنه ولایت حاصل دې.لکه چې د ساتنه په خاطر وصی ته دا ولایت حاصل دې.چه د غائب بالغ وارث سامان خرڅ کړی .نو هرکله چې وصی ته اختیار حاصل دې.نو پلار ته به په درجه اولی حاصل وی .خکه چې د پلار شفقت زیات دې.او،،مال منقوم،، خرڅول د ساتنه د اقسامو خنې دې.او په غیرمنللقو.له مال کې دا خبره نشته.خکه چې دا پخپله محفوظ وی .اود پلار نه علاوه نورو قرابتدارو (رشته دارو) ته دا اختیارنشته.خکه چې دوی ته هیڅ قسمه ولایت حاصل نه دې.نه دوی ته دده په ماشوموالی کې د تصرف اختیار وو.اونه د بالغ کیدلو نه روسته د ساتنه ولایت شته.

وَإِذَا جَازَ بَيْعُ الْأَبِ او هرکله چې پلار ته د خوی د مال خرڅول جائز شو فَالثَّمَنُ مِنْ جِنْسِ حَقِّهِ وَهُوَ النَّفَقَةُ او ثمن د پلار په حق کې دجنس یعنی د نفقې د قسم خنې دې فَلَهُ الِاسْتِيفَاءُ مِنْهُ نوپلار له د مشتری نه وصولول جائز دی كَمَا لَوْ بَاعَ الْعَقَارَ وَالْمَنْقُولَ عَلَى الصَّغِيرِ لکه مثلا که پلار دخپل صغیر بچې جائیداد منللقو.له یا غیر منلقو.له خرڅ کړو جَازَ نو جائز دې لِكَمَالِ الْوِلَايَةِ خکه چې ( پلار ته په دې باندې) پوره ولایت حاصل دې ثُمَّ لَهُ أَنْ يَأْخُذَ مِنْهُ بِنَفَقَتِهِ بیا پلار ته دا اختیارشته.چه د ثمن نه خپله نفقه واخلی لِأَنَّهُ مِنْ جِنْسِ حَقِّهِ خکه چې دا دده د نفقې د جنس خنې دې.

تشریح:- بیا پلار ته د خوی مال خرڅولو اختیارشته.او ددې قیمت دده د پلار د حق جنس دې.یعنی د نفقه قسم دې.نو پلار ته اختیار شته.چه قیمت د مشتری نه وصول کړی .لکه مثلاً که پلار د خپل صغیر بچې جائیداد منللقو.له یا غیرمنلقو.له خرڅ کړلو.نو جائز دی .خکه چې پلار ته په دې باندې پوره ولایت حاصل دې.بیا پلار ته دا اختیار هم شته.چه د قیمت نه خپله نفقه واخلی .خکه چې دا دده د حق جنس دې.

## د غائب ځوی د مال نه خپله نفقه اخستل

وَإِنْ كَانَ لِلِابْنِ الْغَائِبِ مَالٌ فِي يَدِ أَبَوَيْهِ اوکه د غائب خوی مال دده د مورپلار په قبضه کې دې وَأَنْفَقَا مِنْهُ او مورپلار ددې نه نفقه واخستله لَمْ يَضْمَنَا نو ضامن به نه وی

تشریح:- مسئله داده.که زوې په سفر لاړلو.او دده مال د مورپلار په قبضه کې وی .اومحتاج مورپلار ددې نه خپله نفقه واخستله.نو دوی به ضامن نه وی .

لِأَنَّهُمَا اسْتَوْفَيَا حَقَّهُمَا خکه چې دې دواړو خپل حق وصول کړې دې لِأَنَّ نَفَقَتَهُمَا وَاجِبَةٌ قَبْلَ الْقَضَاءِ خکه چې د قاضی د حکم نه وړاندې ددې دواړو نفقه واجب ده عَلَى مَا مَرَّ لکه چې تیرشوی دی وَقَدْ أَخَذَا جِنْسَ الْحَقِّ او دې دواړو د خپل حق د جنس نه وصول کړې دی

تشریح:- دلیل دادې.چه دوی دواړو خپل حق حاصل کړلو.خکه چې د قاضی دحکم نه وړاندې ددوی نفقه واجب ده.لکه چې وړاندې د «ولا یقضی بالنفقة فی مال الغائب إلا لهؤلاء» په تشریح کې بیان شو.او دوی

دوارو د خپل حق د جنس څخې اخستې دي.په دي وجه به هم ضامن نه وی .

## د غائب د مال نه د هغه مورپلار له نفقه ورکول

وَإِنْ كَانَ لَهُ مَالٌ فِي يَدِ أَجْنَبِيٍّ اوکه د غائب خوی مال د یو اجنبی کس په قبضه کي وی فَأَنْفَقَ عَلَيْهِمَا بِغَيْرِ إِذْنِ الْقَاضِي ده دده په مورپلار باندې د قاضی دحکم نه بغیر خرج کړو ضَمِنَ نو دې به ضامن وی

**حل اللغة:** ① متبرع: احسان کونکې ② الاستغناء: بې پرواه کیدل، غیرمحتاج ③ الاستدانة: پور اخستل ④ المدة: مودهٔ ]

**تشریح:-** مسئله داده.چه زوې غائب وی .او دده مال د یو اجنبی کس په قبضه کي وی .اوده دده مورپلار ته د قاضی د اجازت نه بغیر ددې نه نفقه ورکړله.نودا اجنبی کس به ضامن وی .

لِأَنَّهُ تَصَرَّفَ فِي مَالِ الْغَيْرِ بِغَيْرِ وِلَايَةٍ څکه چې ده د غیرپه مال کي د ولایت نه بغیر تصرف کړې دې لِأَنَّهُ نَائِبٌ فِي الْحِفْظِ لَا غَيْرُ څکه چې دې صرف د ساتنه نائب دې

**تشریح:-** دلیل دادې.چه دې اجنبی کس د غیر په مال کي د ولایت نه بغیر تصرف کړې دې.څکه چې دې صرف د ساتنه نائب دې.بل څه اختیار ده ته نشته.

بِخِلَافِ مَا إِذَا أَمَرَهُ الْقَاضِي په خلاف ددې که قاضی حکم ورکړې وی لِأَنَّ أَمْرَهُ مُلْزِمٌ څکه چې د قاضی حکم په ده باندې لازم دې لِعُمُومِ وِلَايَتِهِ څکه چې دده ولایت ټولو ته عام دې

**تشریح:-** په خلاف ددې که قاضی ده ته حکم ورکړلو.چه دې د غائب مورپلار ته دده د مال نه نفقه ورکړی .نودا اجنبی کس به ضامن نه وی .څکه چې د قاضی حکم په ده باندې لازم دې.څکه چې د قاضی ولایت په ټولو باندې عام دې.

وَإِذَا ضَمِنَ اوکه دا اجنبی ضامن شو لَا يَرْجِعُ عَلَى الْقَابِضِ .نو دې به قابض ته رجوع نه کوی لِأَنَّهُ مَلَكَهُ بِالضَّمَانِ .او ددې مال مالك شو.څکه چې اجنبی ضمان ورکړو فَظَهَرَ نو ښکاره شوه أَنَّهُ كَانَ مُتَبَرِّعًا بِهِ چې دې خپل مال سره تبرع کونکې دې.

**تشریح:-** په رومبی صورت کي که اجنبی کس تاوان ورکړلو.نودا به دده د مورپلار نه نشی وصولولې.څکه چې اجنبی کس تاوان ورکړلو.او ددې مال مالك شو.نو ښکاره شوه.چه ده خپل ذاتی مال دواړه محتاجو ته د خیرات په طور ورکړې دې.اود خیرات ورکولو نه روسته دخپل مال واپس اخستلو اختیار نه وی .

## د تیرشوی وخت د نفقه سقوط

وَإِذَا قَضَى الْقَاضِي لِلْوَلَدِ وَالْوَالِدَيْنِ وَذَوِي الْأَرْحَامِ بِالنَّفَقَةِ او کله چې قاضی د خوی دپاره،اود مورپلار دپاره،اود ذوی الارحام لپاره د نفقې حکم ورکړو فَمَضَتْ مُدَّةٌ بیا یوه موده تیره شوه سَقَطَتْ نو(ددې مودې نفقه) ساقط شوه.

**تشریح:-** مسئله داده.چه هرکله قاضی په یوسړی باندې دده د بچو،د مورپلار ، اود نورو قرابت دارو نفقه مقررکړله.بیا د نفقه ورکاوه نه بغیر څه موده تیره شوه.نو ددې مودې نفقه به ساقط وی .امام شافعی او امام احمد رحمهما الله هم ددې قائل دی .

لِأَنَّ نَفَقَةَ هَؤُلَاءِ تَجِبُ كِفَايَةً لِلْحَاجَةِ څکه چې ددې خلگو نفقه د حاجت پوره کاوه لپاره واجب وه حَتَّى لَا تَجِبُ مَعَ الْيَسَارِ تردې که دا خلگ مالداره وی نو نه به واجب کیدله وَقَدْ حَصَلَتْ بِمُضِيِّ الْمُدَّةِ اود دومره مودې په تیریدلو سره ددې مودې کفایت اوشو

**تشریح:-** دلیل دادې.چه ددې خلگو نفقه د اړتیا پوره کاوه لپاره واجبیږی .تردې که دا خلگ مالداره وو.نو



ددوی لپاره به نه واجب کیدلې.اود دومره مودې تیریدلو سره ددې مودې کفایت شوې دې.په دې وجه ددې مودې نفقه ساقطیږی .

بِخِلَافِ نَفَقَةِ الزَّوْجَةِ په خلاف د ښځې د نفقې إِذَا قَضَى بِهَا الْقَاضِي چې کله قاضی ددې لپاره مقررکړی لِأَنَّهَا تَجِبُ مَعَ يَسَارِهَا څکه چې دا د ښځې د مالدارئ باوجود هم واجب وی فَلَا تَسْقُطُ بِحُصُولِ الِاسْتِغْنَاءِ فِيمَا مَضَى نو په تیروشوو ورځو کي د استغناء په حاصلولو سره به نه ساقطیږی

**تشریح:-** ددې په خلاف که قاضی د ښځې لپاره نفقه مقررکړله.نود مودې په تیریدلو سره به دده نفقه نه ساقطیږی . دلیل دادې.چه د ښځې نفقه د پور قائم مقام ده.هم دا وجه ده.چه دا د ښځې د مالداره کیدلو باوجود هم واجبیږی .په دې وجه د تیروشوو ورځو د استغناء (کفایت) باوجود به نه ساقطیږی .لکه څنګه چې پور د څه مودې په تیریدلو باندې نه ساقطیږی .

قَالَ .قدوری رحمه الله فرمائی إِلَّا أَنْ يَأْذَنَ الْقَاضِي بِالِاسْتِدَانَةِ عَلَيْهِ مګرداچه قاضی په ده باندې د قرضه اخستلو حکم ورکړی لِأَنَّ الْقَاضِيَ لَهُ وِلَايَةٌ عَامَّةٌ څکه چې قاضی ته ولایت عامه حاصل دې فَصَارَ إِذْنُهُ نو دده حکم ورکول داسې شو كَأَمْرِ الْغَائِبِ ګویا غائب سړی پخپله ددې اجازت ورکړې وی فَيَصِيرُ دَيْنًا فِي ذِمَّتِهِ نودا پور به دده په ذمه وی فَلَا تَسْقُطُ بِمُضِيِّ الْمُدَّةِ، وَاللَّهُ تَعَالَى أَعْلَمُ بِالصَّوَابِ او په مودې تیریدو سره به نه ساقطیږی

**تشریح:-** امام قدوری رحمه الله فرمائی .که قاضی د غائب سړی په ذمه باندې د پور اخستلو حکم کړې وی .نود مودې په تیریدلو سره به ددوی نفقه نه ساقطیږی .دلیل دادې.چه قاضی ته ولایت عامه حاصل دې.نود قاضی حکم ورکول داسې شو.لکه چې غائب سړی په خپله اجازت ورکړې وی .چه زما په ذمه پور اخله.نودا پور پخپله دده په ذمه شو.نود مودې په تیریدلو سره به نه ساقطیږی .

## د غلام او وینځې نفقه

فَصْلٌ وَعَلَى الْمَوْلَى : په مولا واجب دی . أَنْ يُنْفِقَ عَلَى عَبْدِهِ وَأَمَتِهِ چې خپلې وینځې او غلام ته نفقه ورکړی لِقَوْلِهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْمَمَالِيكِ څکه چې نبی کریمﷺ د مملوکو په حق کي ارشاد فرمائیلې دې {إِنَّهُمْ إِخْوَانُكُمْ جَعَلَهُمُ اللَّهُ تَعَالَى چې دا خلگ ستاسو رونړه دی تَحْتَ أَيْدِيكُمْ.دوی الله تعالی ستاسو د لاسونو لاندې کړی دی أَطْعِمُوهُمْ مِمَّا تَأْكُلُونَ نو څه چې تاسو خورئ.د هغې نه دوی باندې هم خوروئ. وَأَلْبِسُوهُمْ مِمَّا تَلْبَسُونَ او څه چې پخپله اغوندئ.د هغې نه په دوی هم اغوندئ. وَلَا تُعَذِّبُوا عِبَادَ اللَّهِ}[1] اود الله تعالی بندګانو ته تکلیف مه ورکوئ

**حل اللغة:** ① زمنا: شل ② ایفاء: پوره کول ③ ابطال: باطلول ④ تعذیب: عذاب ورکول]

**تشریح:-** په دې فصل کي د مملوك او غیرمملوك حیواناتو وغیره دنفقه حکم دې.

مسئله داده.په آقا باندې واجب ده.چه دې خپل غلام او وینځې ته نفقه ورکړی .څکه چې نبی کریمﷺ د مملوکو(غلامانو) په حق کي فرمائیلي دی .«إنهم إخوانكم جعلهم الله تعالى تحت أيديكم اطعموهم مما تاكلون والبسوهم مما تلبسون ولاتعذبوا عباد الله» یعنی ،،دا خلگ ستاسو رونړه دی .الله تعالی دوی تاسوته د لاس لاندې (په قبضه کي ) درکړی دی .نو څه چې پخپله خورئ.د هغې نه په دوی هم خوراك کوئ.اوڅه چې تاسو اغوندئ.د هغې نه دوی ته هم اغوندئ.اود الله تعالی بنده ګانو ته تکلیف مه ورکوئ،، ددې حدیث نه معلومه شوه.چه په آقا باندې دده د غلام نفقه او کسوه(لباس) واجب دې.خو په حدیث کي د خوراك اولباس

[1] من حدیث ابی ذر رضی الله عنه اخرجه البخاری العتق باب ١٢ ومسلم فی الایمان والنذور رقم ٣٨ وابوداود فی الادب باب ١٢٤ رقم (٥١٥٧).

جنس مراد دي.يعني دوى ته نفقه ورکوئ.او کپړه ورکوئ.دا مراد نه دي.چه څنګه تاسو خورئ.هم هغه شان دوى باندې هم خورئ.او چې څنګه تاسو اغوندئ.هم هغه شان دوى ته هم اغوندئ.نوکه مولا خپل غلام ته سوچه کپړه ورکړله.او پخپله ددې نه ښه اغوندي .نو صحيح ده.

**فَإِنِ امْتَنَعَ** بيا كه مولا د نفقه ور كاوه نه منع شو **وَكَانَ لَهُمَا كَسْبٌ** او غلام او وينځې ته د ګټلو صلاحيت شته **اكْتَسَبَا** نو مزدورى دې کوى **وَأَنْفَقَا** او خورې دې **لِأَنَّ فِيهِ نَظَرًا لِلْجَانِبَيْنِ** ځكه چې په دې كې د دواړو اړخ رعايت دې **حَتَّى يَبْقَى الْمَمْلُوكُ حَيًّا** تردې چې مملوك به ژوندې وى **وَيَبْقَى فِيهِ مِلْكُ الْمَالِكِ** اود مولا ملك به هم پاته پاتې وى

**تشريح:-** بيا كه مولا دوى ته د نفقه وركولونه انكار اوكړلو.نو كه وينځه اوغلام د مزدورئ صلاحيت لرلې شى . نومزدورى به كوى .او خپله ګزاره به كوى . ځكه چې په دې كې دواړه اړخ ته رعايت دې.د مملوك (غلام) رعايت خو دا دې.چه كه مزدورى كوى .او خورى .نو ژوندې به وى .اود مولا رعايت دادې.چه دده ملك به پاته پاتې وى .چه كله غواړى .خرڅ به نې كړى .

**وَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُمَا كَسْبٌ** اوكه په دې دواړوكې د ګټې كاوه لياقت نه وى **بِأَنْ كَانَ عَبْدًا زَمِنًا** په دې طريقه چې غلام شل وى **أَوْجَارِيَةً** يا وينځه داسې وى **لَا يُؤَاجَرُ مِثْلُهَا** چې خلګ نې په اجرت باندې نه اخلى **أُجْبِرَ الْمَوْلَى عَلَى بَيْعِهِمَا** نو مولا به ددې دواړو په خرڅولو باندې مجبوره كولاى شى **لِأَنَّهُمَا مِنْ أَهْلِ الِاسْتِحْقَاقِ** ځكه چې دا دواړه د نفقې مستحق دى **وَفِي الْبَيْعِ إِيفَاءُ حَقِّهِمَا** او په خرڅولوكې ددې دواړو حق اداكيږى **وَإِبْقَاءُ حَقِّ الْمَوْلَى بِالْخَلَفِ** اود مولا حق خليفه( ثمن ) سره پاته پاتې كيږى

**تشريح:-** كه دوى دواړه د مزدورئ صلاحيت نه لرى .مثلاً غلام ګډشل دې.يا وينځه داسې وى .چه دا څوك په اجرت باندې نه اخلى .نو په دې صورت كې به مولا مجبوروليې شى .چه دا خرڅ كړى .ځكه چې دا دواړه د نفقه مستحق دى .اود استحقاق اهليت هم لرى .او په خرڅولوكې به ددوى دواړو حق هم اداشى .اود مولا د حق خليفه يعنى د مملوك قيمت به ده ته حاصل شى .

**بِخِلَافِ نَفَقَةِ الزَّوْجَةِ** په خلاف د ښځې د نفقې **لِأَنَّهَا تَصِيرُ دَيْنًا** ځكه چې دا ( د خاوند په ذمه) پور كيږى **فَكَانَ تَأْخِيرًا** نو په دې كې به تاخير كيږى **عَلَى مَا ذَكَرْنَا** لكه څنګه چې موږ بيان كړى دى ، **وَنَفَقَةُ الْمَمْلُوكِ لَا تَصِيرُ دَيْنًا** اود مملوكه نفقه ( د مولا په ذمه) نه پور كيږى **فَكَانَ إِبْطَالًا** نو ددې باطلول لازميږى

**تشريح:-** ددې په خلاف كه خاوند خپلې ښځې له د نفقه ور كاوه نه عاجزه شو.نودې به په طلاق ور كاوه باندې نشى مجبوره كولې.ځكه چې د ښځې نفقه د خاوند په ذمه پور وى .نودا به مؤخر كولې شى .

ⓗ لكه څنګه چې په مخكې نئ مسئله كې موږ بيان كړل.يعنى «بخلاف نفقة الزوجة إذا قضى بها القاضي لأنها تجب مع يسارها فلاتسقط» اود مملوك نفقه دده د مولا په ذمه پور نه وى .په دې وجه د مملوك نفقه باطلول لازميږى .او دچا حق باطلول جائز نه دى .په دې وجه به مولا دخرڅولو لپاره مجبوره كولې شى .

ⓗ حاصل داكه مولا خپل مملوك ته د نفقه ور كاوه نه عاجزه شو.نو مولا به مجبورولې شى .چه دې دا خرڅ كړى .اوكه خاوند خپلې ښځې ته د نفقه وركولونه عاجزه شو.نو په طلاق وركولوباندې به نشى مجبوره كولې.

ⓗ په دې دواړو كې وجه د توپير داده.كه مولامجبوره كړې شى .چه خپل مملوك خرڅ كړى .نود مولا ،،ملك الى خلف،، به زائل شى .يعنى اګرچه ملك به زائل شى .خوددې خليفه يعنى د مملوك قيمت به حاصل شى .او په نه مجبوره كولوكې د نفقه په سلسله كې د مملوك حق د خليفه نه بغير فوت كيږى .په دې وجه د مملوك نفقه د مولا په ذمه نه پور كيږى .اوكه خاوند مجبوره شو.چه دې خپلې ښځې ته طلاق وركړى .نود



خاوند ملك د خليفه نه بغيرفوت كيږى .اوپه طلاق نه وركولوكې اګرچه د ښځې حق فى الحال فوت كيږى .خو خليفه پاته پاتې وى .ځكه چې د قاضى په حكم وركولوسره د ښځې نفقه د خاوند په ذمه پور كيږى .نود ښځې حق به مؤخر كړې شى .خو باطل به نه وى .

**وَبِخِلَافِ سَائِرِ الْحَيَوَانَاتِ** او په خلاف د ټولو حيواناتو **لِأَنَّهَا لَيْسَتْ مِنْ أَهْلِ الِاسْتِحْقَاقِ** ځكه چې دې حيواناتو ته د استحقاق لياقت نشته **فَلَا يُجْبَرُ عَلَى نَفَقَتِهَا** نو مالك به دوى ته په نفقه ور كاوه باندې نشى مجبوره كولې **إِلَّا أَنَّهُ يُؤْمَرُ بِهِ فِيمَا بَيْنَهُ وَبَيْنَ اللَّهِ تَعَالَى** خو ديانةً به ده ته حكم ور كولاى شى

**تشريح:-** كه مالك خپلو څاروو ته نفقه (وښه يا ګيا) نه وركوى .نودې به په ګيا وركولو، يا په خرڅولو نشى مجبوره كولې.ځكه چې د مالك په مجبوره كولوكې يو ډول قضاء(دحاكم حكم) دې.اود قاضى لپاره د مقضى له (دچا په حق كې چې حكم وركولې شى ) موجوديدل ضرورى دى .او په مقضى له كې د استحقاق لياقت ضرورى دې.نوچونكه حيواناتو كې د استحقاق لياقت نشته.په دې وجه حيوانات مقضى له نشى كيدلې.او هركله چې مقضى له نشى جوړيدلې.نو قاضى ددوى لپاره څه حكم هم نشى وركولې.په دې وجه موږ اووئيل.چه د حيواناتو مالك به په نفقه ور كاوه يا په خرڅولوباندې نشى مجبوره كولې.خو ديانتاً ،،فيما بينه وبين الله،، به ده ته حكم وركولې شى .چه دې خپلوڅاروو ته ګيا وركړى .يا نې خرڅ كړى .اوكه داسې نې اونكړل.نودا كس به ګناهګار وى .

ⓗ په حديث كې دى .چه يوه ښځه د پيشى په وجه دوزخ ته داخله شوه.چه دې قيده كړې وه.تردې چې دا پيشى مړه شوه.نه نې دا پريخودله.چه د زمكې چينجى مينجى نې خوړلې وې.او نه نې دې ته څه وركول.

**لِأَنَّهُ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ {نَهَى عَنْ تَعْذِيبِ الْحَيَوَانِ}** ([1]) ځكه چې نبى كريم ﷺ حيواناتو د تكليف ور كاوه نه منع كړې ده **وَفِيهِ ذَلِكَ** حالانكه په وښه نه ور كاوه كې داخبره موجود ده **وَنَهَى عَنْ إِضَاعَةِ الْمَالِ** ([2]) او نبى كريم ﷺ د مال ضائع كاوه نه منع فرمائيلې ده. **وَفِيهِ إِضَاعَتُهُ** حالانكه په دې كې مال ضائع كول دى

**تشريح:-** نبى كريم ﷺ څناورو ته د تكليف ور كاوه نه منع فرمائيلې ده.حالانكه په ګياه نه وركولوكې دوى ته تكليف وركول موجود دى .اوهم دغه ډول رسول الله ﷺ د مال ضائع كاوه نه منع كړې ده.لكه چې د حضرت مغيره ؓ حديث دې. «قال رسول الله ﷺ إن الله حرم عليكم إضاعة المال» او ښكاره ده.چه څاروو ته ګياه نه وركولوكې خپل مال بربادول لازميږى .

**وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ** اود امام ابويوسف رحمه الله نه نقل دى . **أَنَّهُ يُجْبَرُ** چې مالك به مجبورولې شى **وَالْأَصَحُّ** او صحيح هغه دى **مَا قُلْنَا وَاللَّهُ تَعَالَى أَعْلَمُ بِالصَّوَابِ** كوم چې موږ بيان كړل. والله تعالى اعلم.

**تشريح:-** اود امام ابويوسف رحمه الله نه دا هم روايت دې.چه مالك به مجبوره كولې شى .چه څاروو ته نفقه وركړى .اود امام شافعى ، امام مالك، اود امام احمد رحمهم الله هم دا قول دې.او صحيح قول هغه دې.كوم چې موږ وړاندې بيان كړلو.والله اعلم بالصواب

# كتاب العتاق

**تشريح:-** د آزادئ او طلاق په مينځ كې مناسبت دادې.چه په دې دواړوكې هر يو د اسقاط د قبيلې څخې دي.خودومره خبره ده.چه اعتاق ملك د رقبه ساقطوى .اوطلاق ملك د منافع ساقطوى . دوهم مناسبت

(دا) كتاب د ازادئ (د احكامو په بيان كښې) دې.

۱) تقدم تخريجه الحديث السابق)_

۲) من حديث مغيرة بن شعبة رضي الله عنه أخرجه البخارى فى الإستقراض باب ۱۹ ومسلم فى القضاء رقم ۱۲)_

دادي.چه په دي دواړو کي هريو کي لزوم دي.لکه څنګه چي عتق فسخ نه قبلوی .دغه ډول طلاق هم فسخ نه قبلوی .طلاق اګرچه غيرمندوب دي.خو ددي باوجود مقدم کړي شو.چه د نکاح په مقابله کي ذکرشی .د اسقاطاتو يوڅوقسمونه دی ،،اسقاط حق عن الرق،، عتق دي.او ،،اسقاط حق عن البضع ،،طلاق دي.اوکوم څيزچه دچا په ذمه وی .هغه ساقطول ابراء ده.او ،،اسقاط حق عن القصاص والجراحات ،، عفو ده.

ⓐ په لغت کي د ،،عتق،، معنی قوت دي.،،عتق الفرخ،، هغه وخت وئيلي شی .چه کله د چوغکه بچي طاقتور شی .او په خپلو وزرو باندي والوځی .او ،،فرش عتيق،، هغه اس ته وئيلي شی .چه په منډه کي د ټولو نه وړاندي شی .او ښکاره خبره ده.چه دا کار د قوت او توان نه بغير نه کيږی .او ،،بيت عتيق،، کعبه ته هم په دي وجه وئيلي شی .چه دا د الله تعالی د قوت په وجه پخپل ځان باندي هر چور کونکي، او مالکانه قبضه کونکي دفع کوی .او په شريعت کي عتق هغه شرعی قوت ته وئيلي شی .چه ددي په وجه انسان د شهادت، ولايت، اود قضاء اهل جوړيږی .

د عتق مفهوم✿عتق (آزادی ) مملوك حکماً ژوندي کول دی .څکه چي مملوك جماداتو سره ملحق کيږی .نو هرکله چي دي آزاد کړي شو.نود بشري کرامتونو اهل شو.مثلاً د آزادئ نه روسته دده ګواهی قبلولي شی .او ده ته د ولايت حق حاصليږی .اود آزادئ نه روسته ددي صفاتو حاصليدل کوم چي د آزادئ نه وړاندي حاصل نه وو.په حقيقت کي ده ته ژوند ورکول دی .

ⓐ عتق: (آزادی ) اعتاق:(آزادول) معتِق بکسرالتاء:(آزادونکي) معتَق بفتح التاء:(آزاد کړي شوي)
بيا د عتق سبب په دوي [دوه] قسمه دي.① اول داچه د سړي په ذمه واجب وی .لکه په کفاره او نذر وغيره کي آزادول واجب وی .② دوهم داچه واجب نه وی .نو په دي کي يو اختياری وی .او بل غير اختياری وی . اختياری دادي.چه يوکس د ثواب په نيت سره غلام آزادکړلو.او غير اختياری دادي.چه خپل قرابتی ئې واخستلو.نودي دده مالك جوړشو.اودي آزاد شو.

ⓐ اود عتق شرط دادي.چه آزادونکي پخپله آزاد وی .او عاقل بالغ وی .اود مملوك مالك وی .که سړي وی . اوکه ښځه وی .او دعتق رکن هغه دي.چه په هغي سره آزادی ثابت شی .او ددي حکم رقيت اوملك د محل نه زائل کيدل دی .

ⓐ بيا د آزادولو څوقسمونه دی .① اول مرسل: يعنی فی الحال د څه شرط نه بغير آزادول.② دوهم معلق:يعنی که تا داسي اوکړل.يا ماداسي اوکړل.نو ته دي آزاد ئې. ③دريم: د خپل مرګ نه روسته ته آزادی منسوب کول.بيا به په دي کي هر يو يا په عوض(بدل) سره وی .يا به د عوض نه بغير وی .(عنايه، فتح القدير)

## د مملوك أزادولو شرعي حيثيت

| |
|---|
| اَلْإِعْتَاقُ تَصَرُّفٌ آزادول داسي داسي کار دي مَنْدُوبٌ إِلَيهِ چي دي ارخ ته شوق کيږی قَالَ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نبی کريمﷺ فرمائيلی دی . {أَيُّمَا مُسْلِمٍ چي کوم مسلمان يو مسلمان آزاد کړو أَعْتَقَ مُؤْمِنًا أَعْتَقَ اللّٰهُ تَعَالٰى بِكُلِّ عُضْوٍ مِنْهُ عُضْوًا مِنْهُ مِنَ النَّارِ}[1] الله تعالی د هغه د هرااندام په بدله کي د آزادونکی اندا م د اور نه آزادوی وَلِهٰذَا اسْتَحَبُّوا په دي وجه عالمانو داخبره خوښه کړي ده أَنْ يُعْتِقَ الرَّجُلُ الْعَبْدَ چه سړي غلام آزاد کړی وَالْمَرْأَةُ الْأَمَةَ او ښځه وينځه آزاده کړی .لِيَتَحَقَّقَ مُقَابَلَةُ الْأَعْضَاءِ بِالْأَعْضَاءِ چي دټولو اندامونو مقابله خپلوکي متحقق شی |

(١) من حديث ابی هريرة ﷺ اخرجه البخاری فی الكفارات باب ٦ ومسلم فی العتق رقم ٢٣ وابوداؤد فی العتق باب ١٤ رقم ٣٩٦٥ والترمذی فی النذور باب ١٤ رقم ١٥٤١ ).



حل اللغة:① الاعتاق: آزادول ② عضو: اندام]

تشريح:- صاحب د قدوری رحمه الله فرمائی .چه د غلام يا وينځي آزادول شرعاً خوښ عمل دي.ددي په تائيد کي ئې د نبی کريمﷺ ارشاد نقل کړي دي.په بعضو رواياتوکي دا الفاظ دی .﴿من إعتق رقبة مؤمنة اعتق الله بكل عضو منها عضواً من اعضائه من النار حتى الفرج بالفرج﴾ (ترمذی ازفتح القدير) يعنی ،،کوم کس چي مسلمان غلام يا وينځه آزاده کړله.نو الله تعالی دده دهر اندام په بدله کي د آزادونکی اندام د اورنه آزادوی .تردي چي د ښځي شرمګاه د وينځي د شرمګاه په بدله کي ،، په دي وجه د زمانې عالمانو داخبره مستحب ګرځولي ده.چه سړي دي غلام آزادوی .اوښځه دي وينځه آزادوی .چه د ټولواندامونو مقابله خپلو کي متحقق شی .

## د اعتاق د صحت شرائط

| |
|---|
| قَالَ رضی اللهعنه قدوری رحمه الله فرمائی اَلْعِتْقُ يَصِحُّ مِنَ الْحُرِّ الْبَالِغِ الْعَاقِلِ فِي مِلْكِهِ چي آزادول عاقل ، بالغ، آزاد سړی دارخه ( دده) پخپل ملك کي صحيح دی |

تشريح:- په عبارت کي د عتق نه مراد اعتاق (آزادول) دی .قدوری د اعتاق د صحت لپاره څلورشرطونه بيان کړي دی .اول داچه آزادونکي پخپله آزاد وی . دوهم داچه آزادونکي عاقل وی .دريم داچه بالغ وی .څلورم داچه غلام د آزادونکی په ملك کي وی .لکه چي فرمائی .چه غلام آزادول صحيح نه دی .مګر د آزاد عاقل بالغ د اړخه ، په دي شرط چي غلام دده په ملك کي وی .

| |
|---|
| شَرَطَ الْحُرِّيَّةَ قدوری رحمه الله د آزادولو شرط شرط لګولي دي لِأَنَّ الْعِتْقَ لَا يَصِحُّ إِلَّا فِي الْمِلْكِ څکه چي آزادول صرف پخپل ملك کي صحيح کيږی وَلَا مِلْكَ لِلْمَمْلُوكِ اود مملوك هيڅ ملك نه وی |

تشريح:- د آزادونکی پخپله آزاديدل څکه ضروری دی .چه اعتاق (آزادول) صرف پخپل ملك کي صحيح کيږی .او څوك چي پخپله مملوك وی .د هغه هيڅ ملك نه وی .په دي وجه مملوك څوك آزادولي هم نشی .او بالغ کيدل څکه شرط دی .چه په نابالغه کي د آزادولو لياقت نشته.څکه چي آزادول په ښکاره ضرر وی . په دي وجه د نابالغه ولی او وصی ته د نابالغه د اړخه د آزادولوشرعاً اجازت نشته.اود عاقل کيدلوشرط په دي وجه لګولي شوي دي.چه ليونی او مجنون ته د هيڅ تصرف لياقت نه وی .او چونکه نابالغه د تصرف اهل نه وی .په دي وجه که بالغ سړی اووئيل.چه ما داخپل غلام په داسي حالت کي آزادکړي وو.چه کله زه پخپله نابالغه ووم.نودده قول به معتبر وی .اوغلام به آزاد نه وی .څکه چي ده آزادول داسي حالت اړخ ته منسوب کړی دی .کوم حالت ( يعنی د عدم بلوغ حالت) چي د اعتاق منافی دي.نو دده دا قول دده د اړخه د اعتاق صحيح کيدلو نه انکار کول دی .اود منکر قول قبلولي شی .په دي وجه به دده قول قبلولي شی .

| |
|---|
| وَالْبُلُوغِ اود بالغ کيدلو( شرط ئې څکه لګولي دي) چي د بالغ کيدلو نه بغير د آزادولو لياقت نه وی لِأَنَّ الصَّبِيَّ لَيْسَ مِنْ أَهْلِهِ لِكَوْنِهِ ضَرَرًا ظَاهِرًا څکه چي آزادول په ښکاره ضرر وی .په دي وجه د نابالغ ولی د د نابالغه د اړخه ( د آزادولو) مالك نه دي. وَلِهٰذَا لَا يَمْلِكُهُ الْوَلِيُّ عَلَيْهِ |

تشريح:- اوچونکه د آزادونکی عاقل کيدل شرط دی .په دي وجه که آزادونکی اووئيل.چه مادا خپل غلام په داسي حالت کي آزادکړي وو.چه زه ليوني ووم.او حال دا چي ددي سړی جنون په خلګ وکي ښکاره وو.نو بيابه هم دده قول معتبر وی .ددي دليل هم دادي.چه دي سړی اعتاق داسي حالت اړخ ته منسوب کړلو.کوم چي د حالت اعتقا منافی دي.نو ګويا دا کس د اعتاق منکر دي.اود منکر قول معتبر وی .په دي وجه به دده قول معتبر وی .

| |
|---|
| وَالْعَقْلِ لِأَنَّ الْمَجْنُونَ لَيْسَ بِأَهْلٍ لِلتَّصَرُّفِ اود عاقل کيدلو ( شرط ئې په دي وجه لګولي) چي مجنون (ليونی) |

ته د هيڅ تصرف لياقت نشته. وَلِهٰذَا لَوْقَالَ الْبَالِغُ اوهم په دې وجه كه بالغ اووئيل أَعْتَقْتُ وَأَنَا صَبِيٌّ چې ما( دا غلام) په داسې حالت كې آزاد كړې وو چې كله زه پخپله ماشوم ووم فَالْقَوْلُ قَوْلُهُ نو هم دده قول به قبول وى وَكَذَا إِذَا قَالَ الْمُعْتِقُ اوهم دغه ډول كه آزادونكى اووئيل أَعْتَقْتُ چې ما( دا غلام) په داسې حالت كې آزاد كړې وو وَأَنَا مَجْنُونٌ چې زه ليونې ووم وَجُنُونُهُ كَانَ ظَاهِرًا او حال دا چې ددې سړ لينتوب ( په خلګ وكې) مشهور وو لِوُجُودِ الْإِسْنَادِ خكه چې نسبت داسې حالت اړخ ته اومونډې شو إِلٰى حَالَةٍ مُنَافِيَةٍ كوم چې د اعتاق منافى دې وَكَذَا لَوْقَالَ الصَّبِيُّ هم دغه ډول كه بچې اووئيل كُلُّ مَمْلُوكٍ أَمْلِكُهُ .چه هرمملوك چې زه ئې مالك يم فَهُوَ حُرٌّ إِذَا احْتَلَمْتُ دا هغه وخت ازاد دې.چه كله زه بالغ شم لَا يَصِحُّ ( دا) صحيح نه ده. لِأَنَّهُ لَيْسَ بِأَهْلٍ لِقَوْلٍ خكه چې بچې دداسې خبرې اهل نه دې مُلْزِمٍ كوم چې په ده باندې لازمونكې وى .

**تشريح:**- اوهم دغه ډول به آزادول صحيح نه وى .چه كله نابالغ سړى اووائى .چه هرمملوك چې زه ئې مالك يم.دا هغه وخت آزاد دې.كله چې زه بالغ شم.دليل دادې.چه نابالغه سړى ته دا لياقت نشته.چه داسې خبره اوكړى .چه هغه په ده لازم شى .خكه چې نابالغه دداسې خبرو نه شرعاً منع كړې شوې دې.

وَلَا بُدَّ أَنْ يَكُونَ الْعَبْدُ فِي مِلْكِهِ او ضرورى ده.چه غلام د آزادونكى په ملك كې وى حَتّٰى لَوْ أَعْتَقَ عَبْدَ غَيْرِهِ تردې كه يوكس د بل كس غلام آزادكړو لَا يَنْفُذُ عِتْقُهُ نودا به نافذ نه وى لِقَوْلِهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خكه چې نبى كريمﷺ فرمانيلى دى . {لَا عِتْقَ فِيمَا چې سړې د كوم مالك نه وى لَا يَمْلِكُهُ ابْنُ آدَمَ}[1] په هغې كې آزادول نشته.

**تشريح:**- بيا دا ضرورى ده.چه كوم غلام آزادول غواړې .هغه دده په ملك كې وى .تردې كه يوكس د بل كس غلام آزاد كړلو.نودا به نافذ نه وى .د جمهورعالمانو هم دا مذهب دې.امام مالكؒ فرمائى . چې د خپل نابالغه بچى غلام آزادولې شى .خود بالغ اولاد غلام آزادول صحيح نه دى .دجمهور په مسلك باندې دليل د نبى كريمﷺ فرمان «لا عتق فيما لا يملكه إبـن آدم» ،،سړې چې د كوم (غلام) مالك نه وى .د هغه آزادول صحيح نه دى ،، علامه مرغينانىؒ فرمائى .كه د بل كس غلام ئې آزادكړلو.نودا آزادى به نافذ نه وى .او دائې او نه وئيل.چه صحيح به نه وى .خكه چې غير مملوك آزادول صحيح خودى .خو نفاذ به ئې د مالك په اجازت سره كيږى .د مالك د اجازت نه بغير نفاذ نه كيږى .

### د نيت نه بغيرپه صريح الفاظوسره آزادېدل

وَإِذَا قَالَ لِعَبْدِهِ أَوْ أَمَتِهِ او كه آقا خپل غلام يا وينځې ته اووئيل أَنْتَ حُرٌّ چې ته آزاد ئې أَوْ مُعْتَقٌ أَوْ عَتِيقٌ يا عتيق ئې أَوْ مُحَرَّرٌ يا محررئې أَوْ قَدْ حَرَّرْتُكَ يا ته ما محرركړې أَوْ قَدْ أَعْتَقْتُكَ يا ته ما آزاد كړې فَقَدْ عَتَقَ نو دا آزاد شو نَوٰى بِهِ الْعِتْقَ أَوْ لَمْ يَنْوِ كه ده په دې لفظ سره د آزادولو نيت كړې وى .اوكه نه وى كړې لِأَنَّ هٰذِهِ الْأَلْفَاظَ صَرِيحَةٌ فِيهِ خكه چې دا الفاظ د آزادولو په معنى كې صريح دى .خكه لِأَنَّهَا مُسْتَعْمَلَةٌ فِيهِ شَرْعًا وَعُرْفًا چې شرعاً او عرفاً په دې معنى كې مستعمل دى فَأَغْنٰى ذٰلِكَ عَنِ النِّيَّةِ نو صريح كول به د نيت نه بې نياز كوى وَالْوَضْعُ وَإِنْ كَانَ فِي الْإِخْبَارِ او ددې الفاظو وضع اګرچه په اخبار كې ده فَقَدْ جُعِلَ إِنْشَاءً فِي التَّصَرُّفَاتِ الشَّرْعِيَّةِ لِلْحَاجَةِ لكه خود صورت لپاره تصرفات شرعيه كې د انشاء لپاره جوړكړې شوى دى كَمَا فِي الطَّلَاقِ وَالْبَيْعِ وَغَيْرِهِمَا طلاق او بيع وغيره كې چې كيږى وَلَوْقَالَ اوكه ده اووئيل عَنَيْتُ بِهِ الْإِخْبَارَ الْبَاطِلَ چې ماپه دې الفاظو سره د دروغ خبر نيت كړې وو أَوْ أَنَّهُ حُرٌّ مِنَ الْعَمَلِ يائې دا اووئيل چې زمانيت دا وو) چې ته د كار نه آزاد

---

[1] من حديث عمروبن شعيب عن ابيه عن جده أخرجه ابوداود فى الطلاق باب ٢١٩٠والترمذى فى الطلاق باب ٦ رقم ١١٨١وابن ماجه فى الطلاق باب١٧رقم ٢٠٤٧ واحمد فى المسند (١٩٢٠).



ئې، صُدِّقَ دِيَانَةً نو ديانةً به دده تصديق كولاى شى لِأَنَّهُ يَحْتَمِلُهُ خكه چې لفظ ددې معنى احتمال هم لرى وَلَا يُدَيَّنُ قَضَاءً او كه قضاءً به دده تصديق نشى كولې لِأَنَّهُ خِلَافُ الظَّاهِرِ خكه چې دا د ظاهرخلاف دې.

**تشريح:**- مسئله داده.كه آقا خپل غلام يا وينځې ته اووئيل.« انت حر،يا انت معتق، يا انت عتيق، يا انت محـرر، يا قد حررتك ،يا قد اعتقتك» نودا به آزاد وى .كه په دې الفاظوسره آقا د آزادولو نيت كړې وى .او كه نه ئې وى كړې.خكه چې دا الفاظ د آزادولو په معنى كې بالاتفاق صريح دى .او شرعاً او عرفاً هم په دې معنى كې مستعمل دى .او صريحى الفاظ په عمل كولوكې د نيت محتاج نه وى .په دې وجه په دې الفاظو كې په يو لفظ سره آزادول د نيت محتاج نه دى .

ۛپه اصل وضع كې اګرچه دا الفاظ د اخبار په معنى كې وو.خوپه شرعى تصرفاتو كې د اړتيا په وجه د انشاء په معنى كې شوى دى .لكه څنګه چې په طلاق او بيع وغيره كې كيږى .مثلاً «انت طالق» د اصل وضع په اعتبار سره خبر دې.خود اړتيا په وجه دا د انشاء په معنى كې اخستې شوې دې.او هم دغه ډول ،،بعت،، او ،،اشتريت،، په اصل وضع كې خبر دى .خود انشاء معنى اړخ ته ضرورة نقل كړشې شوى دى .

ۛاوكه آقا اووئيل.چه ما په دې الفاظو سره د دروغوخبر بيانولو اراده كړې وه.يا ئې دا اووئيل چه زما مراد دا وو.چه ته د كار نه آزاد ئې.زه به ستا نه هيڅ كار نه اخلم.نو ديانتاً به دده تصديق كولې شى .خكه چې دا الفاظ په اصل وضع كې ددې معنى احتمال لرى .البته قضاء به ئې تصديق نشى كولې.خكه چې دا معنى خلاف ظاهر ده.اود خلاف ظاهر معنى نيت، قضاء معتبر نه وى .

### خپل مملوك ته د آزادولو په نوم سره آواز كول

وَلَوْقَالَ لَهُ اوكه مولا مملوك ته اووئيل يَا حُرُّ يَا عَتِيقُ اى آزاد ،يا اى عتيق. يُعْتَقُ نودا به آزادوى لِأَنَّهُ نِدَاءٌ بِمَا خكه چې دا آواز كول په داسې لفظ سره دى هُوَ صَرِيحٌ فِي الْعِتْقِ چې په عتق كې صريح دى وَهُوَ لِاسْتِحْضَارِ الْمُنَادٰى بِالْوَصْفِ الْمَذْكُورِ او ندا د منادى په مذكور وصف سره حاضرولو لپاره كيږى هٰذَا هُوَ حَقِيقَتُهُ اودا د معنى حقيقى معنى ده فَيَقْتَضِي تَحَقُّقَ الْوَصْفِ فِيهِ نو تقاضا كوى .چه په منادى كې دا وصف ثابت وى وَأَنَّهُ يَثْبُتُ مِنْ جِهَتِهِ اودا وصف د آواز كونكى د اړخه ثابتيږى فَيَقْضِي بِثُبُوتِهِ تَصْدِيقًا لَهُ فِيمَا أَخْبَرَ نود مولا د قول د تصديق لپاره به ددې وصف ثابتول لازميږى وَسَنُقَرِّرُهُ مِنْ بَعْدُ إِنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالٰى او موږ به انشاء الله روسته ددې تقرير كوو

[حل اللغة: ① الاستحضار: حاضرول ② المنادى: چاته چې آواز كولاى شى ③ اخبار: خبروركول]

**تشريح:**- مسئله:كه مولا مملوك ته اووئيل.« يا حر» يا ئې اووئيل.« يـا عتيـق» نودا مملوك به آزاد شى .خكه چې دا آوازكول په داسې الفاظوسره دى .چه د آزادئ په معنى كې صريحى دى .او نداء وائى .منادى په ذكرشوى وصف سره حاضرول،د منادى حقيقى معنى هم داده.نو په منادى كې به ددې وصف ثابتولو تقاضا كوى .اودا وصف يعنى آزادى د رابلونكى د اړخه ثابت كيدلې شى .نود مولا د قول دتصديق لپاره منادى يعنى په مملوك كې ددې وصف ثابتول لازم شو.او هركله چې په منادى يعنى په مملوك كې وصف د حريت ثابت شو.نومملوك به دخپل مولا د اړخه آزاد شى .

إِلَّا إِذَا سَمَّاهُ حُرًّا خو كه مولا دده نوم حر ايخودې وى ثُمَّ نَادَاهُ بيا ئې ده ته آواز اوكړو يَا حُرُّ چې اى حر،( نو نه به آزاديږى ) لِأَنَّ مُرَادَهُ خكه د مولا مراد دادې الْإِعْلَامُ بِاسْمِ عَلَمِهِ چې دده په نوم سره دې خبردار كړى وَهُوَ مَا لَقَّبَهُ بِهِ يعنى كوم نې چې دده لقب ايخودې دې وَلَوْ نَادَاهُ بِالْفَارِسِيَّةِ يَا آزَادُ اوكه ده ته ئې په فارسئ كې آواز اوكړو.چه اى آزاد وَقَدْ لَقَّبَهُ بِالْحُرِّ او دده لقب ئې حر ايخودې وو قَالُوا يُعْتَقُ نو مشائخ فرمائى .چه دې به آزاد وى

**تشريح:**- او كه مولا د خپل يوغلام نوم ،،حر،،كيخودلو.او بيا ئې ده ته په ،،ياحر،، سره آواز اوكړلو.نودا

غلام به ازاد نه وی .ځكه چې دې وخت دمولا مقصود په دې غلام كې د حريت وصف ثابتول نه دی .بلكه دده په نوم سره ده ته آواز كول دی .نودا كلام به دحريت لپاره انشاء نه وی .

وَكَذَا عَكْسُهُ دغه ډول كه ددې برعكس وی لِأَنَّهُ لَيْسَ بِنِدَاءٍ بِاسْمٍ عَلَمِهٖ ځكه چې دا دده په نوم سره نداء نه ده فَيُعْتَبَرُ إِخْبَارًا عَنِ الْوَصْفِ نو اعتبار به كولې شي .د اخبار عن الوصف ،

تشريح:- او كه دغلام نوم ئې ،،حر،،كيخودلو.اود فارسۍ په ژبه كې ئې په ،، يا آزاد،، سره ده ته آواز اوكړلو.نو مشائخ فرمائی .چه په دې صورت كې به آزاد وی .او هم دغه ډول كه دده نوم ئې ،،آزاد،، كيخودلو.او په ،،ياحر،، سره ئې آواز اوكړلو.نو بيا به هم آزاد وی .ځكه چې په دې كې دده په نوم سره رابلل اونه موندې شو.نوهم دا خيال به كولې شي .چه مولا په دې غلام كې د وصف ثابتولو خبر وركړې دې. او په مملوك كې د حريت وصف ثابتولوسره مملوك آزاديږی .په دې وجه به په دې صورت كې مملوك آزاديږی .

## د بدن داسې اندام ته آزادی منسوب كول چې ټول بدن ترې مراد كيداې شي

وَكَذَا لَوْقَالَ او دغه ډول كه ( مملوك) ته ئې اوونيل رَأْسُكَ حُرٌّ چې ستا سر آزاد دې أَوْوَجْهُكَ أَوْرَقَبَتُكَ أَوْبَدَنُكَ يا ستا مخ، يا ستا سټ يا ستا بدن ( آزاد دې) أَوْقَالَ لِأَمَتِهٖ يا ئې خپلې وينځې ته اوونيل فَرْجُكِ حُرٌّ چې ستا شرمګاه آزاد دې لِأَنَّ هٰذِهِ الْأَلْفَاظَ يُعَبَّرُ بِهَا عَنْ جَمِيعِ الْبَدَنِ ځكه دا الفاظ داسې دی .چه په دې سره د واړه بدن تعبير كيږی وَقَدْ مَرَّ فِي الطَّلَاقِ او په كتاب الطلاق كې ( دا بيان) تير شوې دې

حل اللغة* ① وجهه: مخ ② رقبة: څټ ③ شائع: خور، ناقابل تقسيم]

تشريح:- مسئله:كه مولا خپل مملوك ته اوونيل. «رأسك حر» يا ئې اوونيل. «وجهك حر» يا ئې اوونيل. «رقبتك حر» يا ئې اوونيل. «بدنك حر» يا ئې خپلې وينځې ته اوونيل. «فرجك حــر» نو په دې ټولو الفاظو سره مملوك آزاديږی .دليل دادې.چه دا واړه الفاظ داسې دی .چه په دې سره واړه بدن تعبير كولې شي .او په كتاب الطلاق كې دا بيان تيرشوې دې.هلته كې ئې اوګورئ.

وَإِنْ أَضَافَهُ إِلٰى جُزْءٍ شَائِعٍ او كه آزادول جزء شائع اړخ ته منسوب كړل يَقَعُ فِي ذٰلِكَ الْجُزْءِ نو په دې جزی كې به ( آزادی ) واقع كيږی وَسَيَأْتِيكَ الْإِخْتِلَافُ فِيهِ إِنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالٰى او په دې كې چې كوم اختلاف دې.انشاء الله عنقريب راروان دې

تشريح:- او كه آزادول يوشائع جزء يعنی دريمې يا څلورمې برخې اړخ ته منسوب كړې شو.نو اول به په دې جزء كې آزادی واقع شی .بيا به په واړه بدن كې خوريږی .په دې كې چې كوم اختلاف د امام صاحب اود صاحبينو رحمهم الله په مينځ كې دې.انشاءالله دا نژدې راروان دې.

## د بدن داسې اندام طرف ته آزادی منسوب كول چې ټول بدن ترې نه مراد كيږی

وَإِنْ أَضَافَهُ إِلٰى جُزْءٍ مُعَيَّنٍ او كه آزادول ئې يو معين جزء اړخ ته منسوب كړل لَا يُعَبَّرُ بِهٖ عَنِ الْجُمْلَةِ چې په دې سره واړه بدن نشی تعبير كولې كَالْيَدِ وَالرِّجْلِ لكه لاس او خپه لَا يَقَعُ عِنْدَنَا نو زموږ په نيز آزادی نه واقع كيږی

تشريح:- مسئله:كه آزادول يو داسې جزء اړخ ته منسوب كړې شی .چه په دې سره واړه بدن نه تعبير كيږی .مثلاً لاس اړخ ته ئې منسوب كړله.يا ئې پښو اړخ ته منسوب كړله.نو په دې صورت كې زموږ په نيز آزادی نه واقع كيږی .

خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللّٰهُ د امام شافعی رحمه الله اختلاف دې وَالْكَلَامُ فِيهِ او په دې كې كلام داسې دې كَالْكَلَامِ فِي الطَّلَاقِ لكه څنګه چې په طلاق كې دې وَقَدْ بَيَّنَّاهُ اودا موږ بيان كړی دی .



تشريح:- البته د امام شافعی ، امام زفر،اود امام احمد رحمهم الله په نيز په دې صورت كې هم آزادی واقع كيږی .په دې اړه كې تفصيلی كلام په ،،باب ايقاع الطلاق،، كې بيان كړې شوې دې.د اعاده (دوباره) كولو اړتيا نشته دې.

## د آزادۍ په كنائی الفاظوكې د نيت ضرورت

وَلَوْقَالَ اوكه ( مملوك) ته ووايي لَامِلْكَ لِي عَلَيْكَ زما په تاباندې هيڅ ملك نشته وَنَوٰى بِهِ الْحُرِّيَّةَ او په دې سره ئې د آزادولو نيت اوكړو عَتَقَ نو دې به آزاد وی وَإِنْ لَمْ يَنْوِ اوكه نيت ئې اونكړو لَمْ يُعْتَقْ نو نه به آزاديږی .

تشريح:- صورت دمسئلې دادې.كه مولا خپل مملوك ته اوونيل. «لاملك لی عليك» او په دې كلام سره ئې د آزادولو نيت اوكړلو.نودا مملوك به آزاد وی .اوكه د آزادولو نيت ئې نه وی كړې.نو آزادی به نه واقع كيږی .

لِأَنَّهُ يَحْتَمِلُ ځكه احتمال دې أَنَّهُ أَرَادَ چې د قائل مراد دا وی لَامِلْكَ لِي عَلَيْكَ چې زما په تاباندې هيڅ ملك نشته لِأَنِّي بِعْتُكَ ځكه چې ته ما خرڅ كړې ئې وَيَحْتَمِلُ او( دا هم ) احتمال دې لِأَنِّي أَعْتَقْتُكَ چې ته ما آزاد كړې فَلَا يَتَعَيَّنُ أَحَدُهُمَا مُرَادًا إِلَّا بِالنِّيَّةِ نود نيت نه بغير هيڅ احتمال نه متعين كيږی

تشريح:- دليل دادې.چه داكلام دكنائی الفاظو څنې دی .ځكه چې په دې كې دوې [دوه] احتماله دی .يو داچه زما ملك په تا باندې په دې وجه نشته.چه تا ما خرڅ كړې ئې.او دوهم احتمال دادې.چه ملك ځكه نشته.چه ته ما آزادكړلې.نو ثابته شوه.چه داكلام د آزادولو په معنی كې صريح نه دې.بلكه كنائی دې.او كنائی الفاظ په عمل كې دنيت محتاج وی .د نيت نه بغير ددې هيڅ احتمال نه متعين كيږی . او آزادی به نه واقع كيږی

## په كنائی الفاظوسره د آزادۍ نيت كول

قَالَ رضی الله عنه قدوری رحمه الله فرمائی وَكَذَا كِنَايَاتُ الْعِتْقِ هم دا احتمال دې.د كنايات عتق وَذٰلِكَ مِثْلُ قَوْلِهٖ خَرَجْتِ مِنْ مِلْكِي اودا لكه د مولا قول چې ته زما د ملك نه اووتلې وَلَا سَبِيلَ لِي عَلَيْكِ او زما لپاره په تا باندې هيڅ لارنشته وَلَا رِقَّ لِي عَلَيْكِ او زما لپاره په تاباندې هيڅ رقيت نشته وَقَدْ خَلَّيْتُ سَبِيلَكِ او ما ستا لاره پريښولې (پريخودې) ده

حل اللغة* ① تخلية: خالی كول ]

تشريح:- صاحب دقدوری رحمه الله فرمائی .چه هم دا حال د آزادولو د كنائی الفاظو دې.يعنی په كنائی الفاظوسره ئې كه د آزادولو نيت كړې وی .نو آزادی به واقع كيږی .ګنی نه به واقع كيږی .دكنائی الفاظ مثال، لكه چې خپل غلام ته اووائی .،، ته زما د ملك اووتلې،، يا وينځې ته اووائی .،،ته زما دملك نه اووتلې،،او يا مثلا داسې اووائی .چه ،،زما لپاره په تا باندې هيڅ لاره نشته،،يا ،، په تاباندې زما رقيت نشته،، يا ،،ما ستالاره خالی پريښولې (پريخودې) ده،،

لِأَنَّهُ يَحْتَمِلُ ځكه احتمال دې نَفْيَ السَّبِيلِ وَالْخُرُوجَ عَنِ الْمِلْكِ وَتَخْلِيَةَ السَّبِيلِ بِالْبَيْعِ أَوِ الْكِتَابَةِ چې په بيع كول يا په مكاتب كولوسره لاره خالی كول،اود ملك نه وتل،( مراد وی كَمَا يَحْتَمِلُ بِالْعِتْقِ دغه ډول داهم احتمال دې.چه په آزادولو سره ( ئې داسې كړې وی ) فَلَا بُدَّ مِنَ النِّيَّةِ نو نيت كول ضروری دی

تشريح:- دليل دادې.چه په دې ټولو الفاظوكې دآزادۍ نه علاوه د نورو معانو احتمال هم شته.ځكه چې لكه څنګه دا معنی ده.چه ما آزاد كړې.يا په دې وجه ته زما د ملك نه اووتلې. يا زما د آزادولو په وجه زما ملك په تاباندې پاتې نشو.وغيره ذالك.دغه ډول دا احتمال هم شته.چه ته ما خرڅ كړې ئې.يا مكاتب كړې ئې.په دې وجه ته زما د ملك نه اووتلې.يا زما ملك په تا پاتې نشو.نود يو احتمال متعين كاوه لپاره نيت كول ضروری دی .او كه نيت اونه موندې شو.نو آزادی به نه واقع كيږی .

وَكَذَا قَوْلُهُ لِأَمَتِهِ اوهم دغه ډول که مولا خپلې وينځې ته اووئيل قَدْ أَطْلَقْتُكِ چې تاما پريښولې (پريخودې) نې لِأَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ قَوْلِهِ خَلَّيْتُ سَبِيلَكِ ځکه چې دا د «خليت سبيلك» په مرتبه کې دى وَهُوَ الْمَرْوِيُّ عَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ او هم دا د ابويوسف رحمه الله نه نقل دى بِخِلَافِ قَوْلِهِ په خلاف ددې (که) ده (خپلې وينځې ته) اووئيل طَلَّقْتُكِ ما تاته طلاق درکړو عَلَى مَا نُبَيِّنُ مِنْ بَعْدُ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى لکه چې موږ به انشاء الله روسته بيان کړو.

تشريح:- اوهم دغه ډول که وينځې ته ئې اووئيل چه ته ما اطلاقه کړې. يعنى ته مې پريخودلې. نو بيا هم نيت ضرورى دې. ځکه چې «قد أطلقتك» د «خليت سبيلك» په مرتبه کې دې. هم دا د امام ابويوسف رحمه الله نه نقل دې. ددې په خلاف که مولاخپلې وينځې ته اووئيل. ما تاته طلاق درکړو. نو په دې صورت کې به دنيت باوجود آزادى ثابت نه وى. ځکه چې دا لفظ په طلاق کې صريح دې. په دې وجه په دې سره آزادى نه ثابتيږى. لکه چې موږ به ئې انشاءالله بيان کړو.

## د آزادئ او غلامئ مشترك الفاظوحکم

وَلَوْقَالَ اوکه (مولا) اووئيل لَا سُلْطَانَ لِي عَلَيْكِ په تاباندې زما سلطنت دې وَنَوَى الْعِتْقَ اود آزادئ نيت ئې اوکړو. لَمْ يُعْتَقْ نو نه به آزاديږى لِأَنَّ السُّلْطَانَ عِبَارَةٌ عَنِ الْيَدِ ځکه چې د سلطنت نه مراد قبضه ده وَسُمِّيَ السُّلْطَانُ بِهِ اونوم کيخودې شو د بادشاه سلطان، لِقِيَامِ يَدِهِ ځکه چې (په مملکت باندې) دده قبضه ده وَقَدْ يَبْقَى الْمِلْكُ او کله کله ملك پاته پاتې کيږى دُونَ الْيَدِ قبضه نه پاتې کيږى كَمَا فِي الْمُكَاتَبِ لکه څنګه چې په مکاتب کې کيږى بِخِلَافِ قَوْلِهِ: لَا سَبِيلَ لِي عَلَيْكِ په خلاف دده د قول «لا سبيل لى عليك» لِأَنَّ نَفْيَهُ مُطْلَقًا بِانْتِفَاءِ الْمِلْكِ ځکه چې مطلقاً د لارې نفى کول د ملك په نفى سره کيږى لِأَنَّ لِلْمَوْلَى عَلَى الْمُكَاتَبِ سَبِيلًا ځکه چې په مکاتب باندې د مولا لاره پاته پاتې کيږى فَلِهَذَا يَحْتَمِلُ الْعِتْقَ په دې وجه دا د آزادئ احتمال لرى

حل اللغة: ① سلطان: بادشاه ② انتفاء: نفى کول]

تشريح:- فوائد: د مصنف رحمه الله په عبارت «السلطان عبارة عن اليد» کې تسامح ده. ځکه چې سلطان قبضې ته نه وائى. بلکه صاحب د قبضه ته وائى. (عينى شرح هدايه)

## مملوك ته په ځوى وئيلو سره د آزادئ ثبوت

وَلَوْقَالَ اوکه مولا (خپل مملوك ته) اووئيل هَذَا ابْنِي چې دا زما زوې دې وَثَبَتَ عَلَى ذَلِكَ عَتَقَ اوهم په دې خبره باندې ټينګ ولاړ وو عتق نو آزاد به وى

حل اللغة: ① يستند: منسوب کولاى شى ② العلوق: په رحم کې د نطفې داخليدواوحمل تياريدو وخت]

تشريح:- صورت دمسئلې دادې. که مولا خپل مملوك اړخ ته اشاره اوکړله. او وې وئيل. چه «هذا ابنى» او هم په دې خبره باندې ټينګ پاتې شو. نودا مملوك به آزاد وى. علامه بدرالدين عينى رحمه الله ليکلى دى. چه د «ثبت على ذالك» قيد اتفاقى دې. ځکه چې په ،،ينابيع،، کې ذکر دى. چه په دې خبره باندې ټينګيدل لازم نه دى. هم دا وجه ده. چه په ،،مبسوط،، کې داقيد ذکر نه دې. او علامه فخرالاسلام بزورى رحمه الله فرمائى. چه په دې خبره باندې ټينګ پاتې کيدل د نسب د ثبوت لپاره شرط دى. د آزادئ لپاره شرط نه دى. نوکه د «هذا ابنى» نه روسته ئې دا اووئيل. چه ما غلط وئيلى وو. يا ماته وهم شوې وو. نودا مملوك به بيا هم آزاد وى. او دده تصديق به نشى کولې.

وَمَعْنَى الْمَسْأَلَةِ او ددې مسئلې مطلب دادې إِذَا كَانَ چې کله غلام داسې وى يُولَدُ مِثْلُهُ لِمِثْلِهِ چې دده پشان ددداسې قائل نه پيدا کيداې شى فَإِنْ كَانَ لَا يُولَدُ مِثْلُهُ لِمِثْلِهِ اوکه داسې وى. چه دمولا نه نشى پيدا کيداې ذَكَرَهُ بَعْدَ هَذَا نودا مسئلې ددې نه روسته ذکرده



تشريح:- صاحب دهدايه رحمه الله فرمائى. چه ددې مسئلې نه مراد دادې. چه کوم کس ته ئې زوې اووئيل. چه دده عمر دومره قدرې وى. چه د مولا نه ئې پيدا کيدل ممکن وى. اوکه غلام داسې وى. چه د مولا نه نشى پيدا کيدلې. مثلاً د مولا عمرشل کاله وى. اود غلام عمرپنځيشت کاله وى. نودا مسئله روسته راتلونکې ده. لږ شان انتظار اوکړئ.

ثُمَّ إِنْ لَمْ يَكُنْ لِلْعَبْدِ نَسَبٌ مَعْرُوفٌ بيا که د غلام هيڅ نسب مشهور نه وى. يَثْبُتُ نَسَبُهُ مِنْهُ نود مولا ځخه به دده نسب هم ثابتيږى لِأَنَّ وِلَايَةَ الدَّعْوَةِ بِالْمِلْكِ ثَابِتَةٌ ځکه چې د نسب د دعوى ولايت د مالك کيدلو په وجه ثابت دې. وَالْعَبْدُ مُحْتَاجٌ إِلَى النَّسَبِ اوغلام د نسب محتاج هم دې. فَيَثْبُتُ نَسَبُهُ مِنْهُ نود مولا ځخه به دده نسب ثابت وى وَإِذَا ثَبَتَ او هرکله چې نسب ثابت شو عَتَقَ نو آزاد شو لِأَنَّهُ يَسْتَنِدُ النَّسَبُ إِلَى وَقْتِ الْعُلُوقِ ځکه چې نسب د نطفه مقرر کيدلو وخت اړخ ته منسوب شو

تشريح:- بيا که د غلام څه مشهور نسب نه وى. نود مولا ځخه به دده نسب هم ثابت شى. ځکه چې د نسب دعوى کاوه ولايت مولا لپاره د مالك کيدلو په وجه ثابت دې. اودې غلام ته د نسب حاجت هم دې. نود مولا ځخه به ئې نسب ثابت شى. او هرکله چې نسب ثابت شو. نو آزاد به هم شى. ځکه چې دنسب نسبت به هغه وخت اړخ ته کيږى. د کوم وخت نه چې نطفه جوړه شوې وى. او هرکله چې د نطفه پيدا کيدلو د وخت نه نسب ثابت شو. نو آزادى به هم هغه وخت نه ثابت شى. ځکه چې نبى کريم ﷺ فرمائيلى دى. «من ملك ذارحم محرم منه عتق عليه»

وَإِنْ كَانَ لَهُ نَسَبٌ مَعْرُوفٌ اوکه د غلام نسب مشهور وى لَا يَثْبُتُ نَسَبُهُ مِنْهُ نود مولا ځخه به دده نسب نه ثابتيږى لِلتَّعَذُّرِ ځکه چې (د مولا نه ثابتول) متعذر دى وَيُعْتَقُ او(دا) غلام به آزاد وى إِعْمَالًا لِلَّفْظِ فِي مَجَازِهِ چې د لفظ عمل په معنى مجازى کې اوشى عِنْدَ تَعَذُّرِ إِعْمَالِهِ بِحَقِيقَتِهِ ځکه چې په حقيقى معنى کې ددې عمل متعذر دې. وَوَجْهُ الْمَجَازِ نَذْكُرُهُ مِنْ بَعْدُ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى اود مجاز وجه انشاءالله موږ روسته ذکرکوو.

تشريح:- او که ددې غلام نسب مشهور وى. نود مولا ځخه به دده نسب نه ثابتيږى. ځکه چې دا غلام دغير نه ثابت النسب دې. په دې وجه د مولا نه ثابتول ناممکن دى. البته دا غلام به آزاد شى. چه لفظ پخپله مجازى معنى باندې محمول کړې شى. چه کله حقيقى معنى نه جوړيږى. او مجاز په دې طريقه دې. چه زوې کيدل د آزادئ سبب دې. نوسبب اووئيلې شو. او مسبب مراد واخستلې شو. اوسبب وئيل. او مسبب مراد اخستل. د مجاز يوطريق دې. تفصيل په راروانه مسئله کې راروان دې.

## غلام ته په مولا وئيلو سره د آزادئ ثبوت

وَلَوْقَالَ هَذَا مَوْلَايَ اوکه (مالك) اووئيل. د زما مولا دې. أَوْ يَا مَوْلَايَ يا ئې اووئيل. چه اې مولا عَتَقَ نودا به آزاد وى أَمَّا الْأَوَّلُ فَلِأَنَّ اسْمَ الْمَوْلَى بهرحال رومبې خو په دې وجه چې لفظ دمولا وَإِنْ كَانَ يَنْتَظِمُ النَّاصِرَ وَابْنَ الْعَمِّ اګرچه مددګار، د اکا زوې وَالْمُوَالَاةَ فِي الدِّينِ وَالْأَعْلَى وَالْأَسْفَلَ فِي الْعَتَاقَةِ دينى موالات، اعلى (آزادونکې) او «اسفل فى العتاقه» (آزادکړې شوې) (ټولو) ته ګډ دې.

حل اللغة: ① ينتظم: شامليږى ② الاعلى: پورته ③ الاسفل: کښته ④ الاكرام: عزت کول]

تشريح:- صورت د مسئلې دادې. که مولا خپل غلام اړخ ته اشاره اوکړه. او وې وئيل. چه «هذا مولائى» يائې ورته آواز اوکړلو. چه «يا مولاى» نو د نيت نه بغير به غلام آزاد وى.

نود اول يعنى د «هذا مولائى» وئيلو په صورت کې دليل دادې. چه لفظ د مولا اګرچه په ډيرو معانو کې مشترك دى. ځکه چې لفظ د مولا د ناصر (مددګار) په معنى کې هم راځى. لکه چې الله تعالى فرمائى ((وَعَلَى الْمَوْلُودِ لَهُ رِزْقُهُنَّ وَكِسْوَتُهُنَّ)) سورة محمد) «أى لاناصر لهم» اود اکا د ځوى په معنى کې هم مستعمل

دې لکه چې الله تعالى فرمائی . ((وَإِنِّي خِفْتُ الْمَوَالِيَ مِنْ وَرَآءِي)) سورۂ مریم) یعنی ، ،ماته د خپل مرګ نه روسته د خپلو اکا خامنو نه یره ده،، او د دینی موالاتو په معنی کې هم استعمال شوې دې.د موالات صورت دادې چه آزاد عاقل بالغ مسلمان یو اجنبی کس ته اووائی . ته زما مولا ئې.که زه مړشوم.نو ته به زما وارث ئې.او که زه جنایت اوکړم.نو ته به زما عاقله ئې.او زما د اړخه به تاوان ورکوې. دوهم اووئيل. ﴿قبلت﴾ نودا قبلونکې به دده مولا وی .که دې مړشو،نو وارث به وی .او که دې څه جنایت اوکړی .نو تاوان به ورکوی .او لفظ د مولا د معتَق یعنی د آزادولو په معنی کې هم مستعمل دې.او د معتِق یعنی د آزاد کړې شوی په معنی کې هم راځی .

إِلَّا أَنَّهُ تَعَيَّنَ الْأَسْفَلُ فَصَارَ كَاسْمٍ خَاصٍّ لَهُ، وَهَذَا لِأَنَّ الْمَوْلَى لَا يَسْتَنْصِرُ بِمَمْلُوكِهِ عَادَةً وَلِلْعَبْدِ نَسَبٌ مَعْرُوفٌ خو ( دلته کې ) د ،،اسفل،، معنی متعین ده.نودا دده اسم خاص شو.ځکه چې مولا په عامه توګه باندې د خپل مملوك نه کومك نه طلب کوی .او د غلام نسب هم مشهور فَانْتَفَى الْأَوَّلُ.وَالثَّانِي نو اول او دوهم منتفی شو وَالثَّالِثُ نَوْعُ مَجَازٍ او دریم ( د دینی موالات معنی ) کې یو ډول مجاز دې وَالْكَلَامُ لِلْحَقِيقَةِ حالانکه کلام په حقیقی معنی کې دې وَالْإِضَافَةُ إِلَى الْعَبْدِ تُنَافِي كَوْنَهُ مُعْتَقًا او غلام اړخ ته نسبت کول،د غلام د معتَق(آزادیدلو) منافی دې فَتَعَيَّنَ الْمَوْلَى الْأَسْفَلُ نو مولا اسفل ( آزادکړې شوې) متعین شو. فَالْتَحَقَ بِالصَّرِيحِ نو ( دالفظ) صریح سره لاحق شو وَكَذَا إِذَا قَالَ لِأَمَتِهِ: هَذِهِ مَوْلَاتِي لِمَا بَيَّنَّا اودغه ډول کله چې ووايي خپلې وینځې ته دا زما مولا ده (نونه آزادیږی ) هغه دلیل په وجه کوم چې موږ بیان کړو

تشریح:- خو دلته کې صرف د ﴿اسفل فی العتاقه﴾ یعنی د آزاد کړې شوی غلام معنی متعین ده.نود مولا لفظ آزاد شوی غلام سره د اسم خاص پشان شو.پاتې شوه داخبره چې لفظ د مولا آزاد شوی غلام سره ولې خاص دې؟ نو ددې وجه داده.چه دلته کې د مولا نه د ناصر اومددګار معنی نشی مراد کیدلې.ځکه چې مولا عام طورخپل مملوك نه کومك نه طلب کوی .او چونکه دغلام نسب معلوم او مشهور دې.په دې وجه د مولا لفظ دلته کې د اکا د خوی په معنی باندې محمول کول هم صحیح نه دی .او دینی موالات مجازی معنی ده.ځکه چې مولا د ،،ولی ،، نه مشتق دې.چه ددې معنی د نژدې کیدلو ده.اوهغه سړی چې په دوی کې یوکس د مشرق اوسیدونکې دې.اوبل د لویدیځ اوسیدونکې دې.په دوی کې هیڅ نیزدیکت نشته.نه حقیقتاً نیزدیکت شته.اونه د نسب په اعتبارسره،او نه د مکان په اعتبار سره قرب شته.نو دینی قرب متعین شو.حاصل داچه دینی موالا مجازی دی .حالانکه دلته کې خبره په حقیقی معنی کې ده.په دې وجه دا معنی هم مراد نشی اخستلې کیدلې.اوچونکه دې کس غلام ته مولا وئیلی دی .په دې وجه د آزادیدلو په معنی کې هم نشی کیدلې. ځکه چې ،، نسبت الی العبد ،، دده د معتق کیدلو منافی دی .نو هرکله چې په دې کې یوه معنی هم مراد نه ده.نود آزاد کړې شوی معنی متعین شوه.او لفظ د مولا د آزاد شوی غلام په معنی کې د صریح پشان دې.او صریحی لفظ د نیت محتاج نه وی .په دې وجه د ﴿هـذا مـولای﴾ په کلام سره د نیت نه بغیر غلام آزادیږی .اوهم دغه ډول که خپلې وینځې ته ئې ﴿هذا مولاتی﴾ اووئيل.نو بیا به هم د نیت نه بغیر آزادیږی .دلیل هم هغه دې.کوم چې موږ د ﴿هذا مولای﴾ لاندې بیان کړلو.

وَلَوْ قَالَ: عَنَيْتُ بِهِ الْمَوْلَى فِي الدِّينِ أَوِ الْكَذِبَ اوکه ووايي چې ما په دې باندې قصد کړې وو دینی موالاة یا ما قصد کړې وو د دروغو (چه دروغ مې ورته ووئيل) يُصَدَّقُ فِيمَا بَيْنَهُ وَبَيْنَ اللَّهِ تَعَالَى نو تصدیق به ئې کولای شی دده وَلَا يُصَدَّقُ فِي الْقَضَاءِ اوتصدیق به ئې نشی کولې په قضاء کې لِمُخَالَفَتِهِ الظَّاهِرَ ځکه چې دا د ظاهر نه مخالفت دې

تشریح:- او که مالك دعوې اوکړله.چه زما مراد داوو.چه ماسره دده دینی موالات دې.یا ما دروغ وئیلی وو.نو په دې صورت کې به دیانةً دده تصدیق کولې شی .خو قاضی به دده تصدیق نه کوی .ځکه چې دا مراد د



ظاهرخلاف دې.اود ظاهر په خلاف نیت، دیانةً معتبر وی .خو قضاءً معتبر نه وی .

وَأَمَّا الثَّانِي او پاتې شو دوهم فَلِأَنَّهُ لَمَّا تَعَيَّنَ الْأَسْفَلُ مُرَادًا ځکه چې هرکله متعین شو لاندینې د مراد لپاره الْتَحَقَ بِالصَّرِيحِ نو دا ملحق شو د صریح (ښکاره) سره وَبِالنِّدَاءِ بِاللَّفْظِ الصَّرِيحِ يُعْتَقُ او په آواز کاوه سره په ښکاره لفظ غلام آزادیږی بِأَنْ قَالَ: يَا حُرُّ يَا عَتِيقُ مثلاً چې ووايي یا اصیله یا اې آزاده فَكَذَا النِّدَاءُ بِهَذَا اللَّفْظِ نو دغه ډول به په آواز کاوه سره آزادیږی چې آواز اوکړی په دې لفظ سره

تشریح:- او پاتې شو دوهم صورت،یعنی هرکله چې ده اووئيل. ﴿یا مولای﴾ اې زما مولا.نو په دې صورت کې دغلام آزادیدلو وجه داده.چه هرکله د مولا په لفظ سره د آزاد شوی غلام معنی مراد ده.نودا لفظ به هم په دې معنی کې د صریح پشان وی .او په صریح لفظ سره په نداء کولوسره دې آزادیدلو.مثلاً وې وئيل :اې حر! یا اې عتیق! نوهم دغه ډول په ،،یا مولا! وئیلو سره به هم د نیت نه بغیر آزادیږی .

وَقَالَ زُفَرُ رَحِمَهُ اللَّهُ لَا يُعْتَقُ فِي الثَّانِي اوامام زفرفرمائی چې نه آزادیږی په دوهم صورت کې لِأَنَّهُ يُقْصَدُ بِهِ الْإِكْرَامُ ځکه چې دې په دې لفظ سره د اکرام (عزت) اراده کوی بِمَنْزِلَةِ قَوْلِهِ يَا سَيِّدِي يَا مَالِكِي لکه د ده قول چې اې زما سرداره اې زما مالکه

تشریح:- او حضرت امام زفر رحمه الله فرمائی .چه په دې دوهم صورت کې په یا مولا وئیلو سره نه آزادیږی .ځکه چې په دې سره تعظیم او تکریم کول هم مراد کیدلې شی .لکه داسې اووائی .چه اې زما سید! یا اې زما مالك!

قُلْنَا: الْكَلَامُ لِحَقِيقَتِهِ موږ وایو چې کلام استعمال شوې دې په خپل حقیقت کې وَقَدْ أَمْكَنَ الْعَمَلُ بِهِ او ممکن دې عمل کول په دې لفظ

تشریح:- خوموږ ددې ځواب ورکوو.چه کلام د خپلې حقیقی معنی لپاره دې.او دلته کې په حقیقی معنی اندې عمل کول ممکن هم دی .په دې وجه به مجازی معنی مراد نشی اخستلې.

بِخِلَافِ مَا ذَكَرَهُ په خلاف د هغه مقیس علیه چې امام زفر ذکر کړې دې (نو د هغې حیثیت د زیر بحث مسئلې پشان نه دې لِأَنَّهُ لَيْسَ فِيهِ مَا يَخْتَصُّ بِالْعِتْقِ ځکه چې په هغې کې هغه څه نشته چې هغه په خاص وی په آزادئ پورې (بلکه هغه د عزت او احترام لپاره استعمالیږی ) فَكَانَ إِكْرَامًا مَحْضًا نو هغه الفاظو کې صرف عزت دې (په هغې کې د آزادئ څه احتمال نشته)

تشریح:- په خلاف د هغې کوم چې د امام زفر رحمه الله نه منقول دی .یعنی په یاسیدی او په یا مالکی کې داسې هیڅ لفظ نشته.چه په آزادئ باندې دلالت کوی .نو په دې کې به اکرام محض وی .او په اکرام محض سره آزادی نه حاصلیږی .

## خپل غلام ته زوی یا ورور یا لور وئیل

وَلَوْ قَالَ اوکه مولا اووئيل يَا ابْنِي اې زما خویه أَوْ يَا أَخِي یا اې زما روره، لَمْ يُعْتَقْ نودا به آزاد نه وی لِأَنَّ النِّدَاءَ لِإِعْلَامِ الْمُنَادَى ځکه چې آواز کول خو د منادی خبرولو لپاره دی إِلَّا أَنَّهُ إِذَا كَانَ بِوَصْفٍ خوچه کله دا په داسې وصف سره وی يُمْكِنُ إِثْبَاتُهُ مِنْ جِهَتِهِ چې ددې ثابتول د آوازکونکی د اړخه ممکن وی كَانَ لِتَحْقِيقِ ذَلِكَ الْوَصْفِ فِي الْمُنَادَى، اسْتِحْضَارًا لَهُ بِالْوَصْفِ الْمَخْصُوصِ نوپه منادی کې ددې وصف ثابتول ګرځولې شی .چه په وصف خاص سره منادی حاضرکړې شی . كَمَا فِي قَوْلِهِ يَا حُرُّ لکه څنګه چې دده په قول یاحر کې دی عَلَى مَا بَيَّنَّاهُ چې دا موږ بیان کړو

حل اللغة: ① انخلق: پیدا شو ② مجرد: صرف ③ اعلام: اعلان کول ④ النداء: آواز]

تشریح:- مسئله داده.که مولا خپل مملوك ته اووئیل ،،یا ابنی ،، یا ني اووئیل ،،یا اخی ،،نودا مملوك به نه آزادیږی .او وراندې تیرشو.چه مالك كه خپل غلام ته په ،،یاحر،، وئیلو سره آواز اوكړلو.نودا غلام به آزاد وی .وجه د توپیر داده.چه آواز كول هركله په یوداسې وصف سره وی .چه ددې ثابتول د رابلونكی د اړخه ممكن وی .(نو په منادی كې به هم دا وصف ثابت ګرځولې شی .یعنی دا به وئیلې شی .چه رابلونكی په منادی كې دا وصف ثابت كړې دې. چې منادی هم په دې خاص وصف سره خپلې مخې ته حاضركړی )، مثلاً وې وئیل.چه یاحر، یعنی اې آزاد.نو حریت (آزادی ) یوداسې وصف دې.چه ددې ثابتول د رابلونكی د اړخه ممكن دی .نودا به وئیلی شی .چه مولا په منادی یعنی په غلام كې د حریت وصف ثابت كړې دې .چه دا غلام په دې خاص وصف سره د مولا مخې ته حاضرشی .او ددې مسئلې پوره تحقیق په تیره شوې مسئله كې بیان شوې دې.

وَإِذَا كَانَ النِّدَاءُ بِوَصْفٍ او هركله چې رابلل په داسې وصف سره وی لَا يُمْكِنُ إِثْبَاتُهُ مِنْ جِهَتِهِ چې ددې ثابتول د رابلونكی د اړخه ناممكن وی كَانَ لِلْإِعْلَامِ الْمُجَرَّدِ نودا آواز كول به صرف د خبرولو لپاره وی دُونَ تَحْقِيقِ الْوَصْفِ فِيهِ اوپه ده كې ددې وصف ثابتولو لپاره نه وی لِتَعَذُّرِهِ خكه چې (دا وصف ثابتول) متعذر دی وَالْبُنُوَّةُ لَا يُمْكِنُ إِثْبَاتُهَا حَالَةَ النِّدَاءِ مِنْ جِهَتِهِ او زوې كیدل( یوداسې وصف دې چه) د رابولونكی په حالت كې د رابلونكی اړخ ته ددې ثابتول ممكن نه دی لِأَنَّهُ لَوْ انْخَلَقَ مِنْ مَاءِ غَيْرِهِ خكه چې دې د غیر د نطفې نه پیدا شوې لَا يَكُونُ ابْنًا لَهُ بِهَذَا النِّدَاءِ دې نو په دې رابللو سره به دده زوې كیږی نه.فَكَانَ لِمُجَرَّدِ الْإِعْلَامِ نو ( دا رابلل به) صرف د خبرولو لپاره وی

تشریح:- او هركله چې آواز كول په داسې وصف سره وی .چه ددې ثابتول د رابلونكی د اړخه ناممكن وی .نودا آواز كول به صرف د منادی خبرولو لپاره وی .او په منادی كې دا وصف ثابتول مقصود نه وی .خكه چې دا وصف ثابتول ممكن نه دی .او په ذكرشوې مسئله كې زوې كیدل داسې وصف دې.چه د رابلونكی په حالت كې د رابلونكی داړخه نشی ثابتیدلې.خكه كه دې دغیر د نطفه نه پیدا شوې وی .نودا غلام ددې رابلونكی په رابللوسره زوې نشی كیدلې.نودا رابلل به صرف د خبرور كاوه لپاره وی .داحكم د ظاهرالروایت مطابق دې.

وَيُرْوَى عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ شَاذًّا اود ابوحنیفه رحمه الله نه شاذ روایت دادې أَنَّهُ يُعْتَقُ فِيهِمَا چې په دواړو صورتونوكې به آزادیږی . وَالِاعْتِمَادُ عَلَى الظَّاهِرِ خو اعتماد په ظاهرالروایة باندې دې.

تشریح:- اود امام ابوحنیفه رحمه الله نه د حسن رحمه الله په واسطې سره یو شاذ روایت دا دې.چه په دواړه صورتونو (یعنی په یا بنی ،او په ، یا اخی ) كې دې آزادیږی .

حاصل دا چې د نداء په ذریعه آزادی په درې لفظونوسره واقع كیږی .یعنی په یاحر، یا عتیق، او په یامولای سره.هم دا ظاهرالروایت دې.اود حسن په روایت كې په پنځه لفظونوسره د نداء په ذریعه آزادی واقع كیږی .ذكر شوی درې لفظونه، او په یا ابنی ، او یا اخی سره.خو اعتماد په ظاهرالروایة دې.والله اعلم بالصواب

### غلام ته په ،،ابن،، سره آواز كول

وَلَوْ قَالَ يَا ابْنُ اې خویه اوكه وې وئیل لَا يُعْتَقُ نو غلام به آزاد نه وی لِأَنَّ الْأَمْرَ كَمَا أَخْبَرَ خكه خبره هم هغه ده.كومه چې ده بیان كړله فَإِنَّهُ ابْنُ أَبِيهِ خكه چې دا غلام د خپل پلار زوې دې وَكَذَا إِذَا قَالَ اوهم دغه ډول كه وې وئیل يَا بُنَيَّ او وړوكی هلكه أَوْ يَا بُنَيَّةُ یا اې وړوكې انجلی لِأَنَّهُ تَصْغِيرُ الِابْنِ وَالْبِنْتِ مِنْ خكه چې دا د ابن او بنت تصغیر دې غَيْرِ إِضَافَةٍ ( خپل اړخ ته) اضافت كاوه نه بغیر وَالْأَمْرُ كَمَا أَخْبَرَ او خبره هم هغه ده.كومه چې ده اوكړله



تشریح:- مسئله داده.كه مولاخپل غلام ته اووئیل ،،یا ابن،، په ضمه سره د یائې متكلم اړخ ته د اضافت كولونه بغیر، نودا غلام نه آزادیږی .خكه چې مولا پخپل خبر كې صادق دې.خكه چې دا غلام د خپل پلار زوې دې.اوهم دغه ډول نې كه اووئیل چه ،،یا بنی ،، یا نې اووئیل ،،بنیته، .نو په دې صورت كې هم آزادی نه واقع كیږی .خكه چې دې كس زوې یا لور، د تصغیر په طور وئیلی دی .او، خپل خان اړخ ته نې اضافت نه دې كړې.او خبره هم دغه ډول ده.څنګه چې ده اووئیل. خكه چې تصغیر كلمه كله د شفقت او ترحم لپاره راوړلې شی .

### مشرغلام ته څوی وئیلو سره آوازكول

وَإِنْ قَالَ لِغُلَامٍ اوكه داسې غلام ته نې اووئیل لَا يُولَدُ مِثْلُهُ لِمِثْلِهِ چې دده مثل دده نه نشی پیدا كیداې هَذَا ابْنِي چې دا زما زوې دې عَتَقَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ نود امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز به آزاد وی

تشریح:- مسئله داده.كه مولا خپل غلام ته اووئیل ،،هذا ابنی ،، په داسې حال كې چې دا غلام دده نه په عمر كې زیات وی .یعنې دداسې قسمه غلام دداسې عمر والا مولا نه پیدا كیدل ناممكن وی .نو په دې صورت كې د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز دا غلام آزادیږی .

وَقَالَا: لَا يُعْتَقُ او صاحبین رحمهما الله فرمائی .چه نه آزادیږی وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللَّهُ اوهم دا د امام شافعی رحمه الله قول دې لَهُمْ أَنَّهُ كَلَامٌ مُحَالُ الْحَقِيقَةِ ..(او) ددې فقهاؤ دلیل دادې چه داكلام خپلې حقیقی معنی سره محال دې فَيُرَدُّ وَيُلْغَى نو مردود او لغو به وی كَقَوْلِهِ أَعْتَقْتُكَ قَبْلَ أَنْ أُخْلَقَ أَوْ قَبْلَ أَنْ تُخْلَقَ لكه دده قول چې، ته ما د خپل خان په داكیدلو نه وړاندې یا ستا د پیدا كیدو نه وړاندې آزادكړې وو

تشریح:- او صاحبین او امام شافعی رحمهم الله فرمائی .چه نه آزادیږی .د صاحبینو اود امام شافعی رحمه الله دلیل دادې.چه ددې كلام په حقیقی معنی باندې محمول كول محال دی .نودا كلام به مردود او لغو وی .لكه داسې وئیل.چه زما د پیدا كیدلو نه وړاندې ته ما آزادكړې وې.نودا كلام لغو دې دغه ډول د خپل خان نه زیات عمر والا غلام ته ،،هذا ابنی ،، وئیل هم لغو دی .پاتې شو دا اعتراض چې دا كلام كه په حقیقی معنی ، یعنی په ،،بنوت،، باندې محمول كول محال دی .نو په مجازی معنی یعنی په حریت باندې دې محمول كړې شی .او ښكاره خبره ده.چه په دې صورت كې هم غلام آزادیږی ؟ څواب دادې.كه په حقیقی معنی باندې عمل كول محال وی .نو مجازی معنی هم نه ثابتیږی .خكه مجاز د حقیقت خلیفه دې.نو هركله چې په اصل یعنی په حقیقت باندې حكم لګول ممكن نه دی .نو په خلیفه باندې به هم حكم لګول ممكن نه وی .او هركله چې، حقیقت او مجاز دواړه ممكن الحكم نه دی .نودا كلام به لغو وی .او ښكاره ده.چه د كلام لغو كاوه په صورت كې آزادی نه واقع كیږی .

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ اود ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادې أَنَّهُ كَلَامٌ مُحَالٌ بِحَقِيقَتِهِ چې دا كلام دخپل حقیقی معنی په اعتبارسره (اګرچه) محال ده لَكِنَّهُ صَحِيحٌ بِمَجَازِهِ خود مجازی معنی په عتبار سره صحیح ده لِأَنَّهُ إِخْبَارٌ عَنْ حُرِّيَّتِهِ مِنْ حِينِ مَلَكَهُ خكه چې دې دده د مالك كیدو د وخت نه دده د آزادیدو خبر وركوی . وَهَذَا لِأَنَّ الْبُنُوَّةَ فِي الْمَمْلُوكِ سَبَبٌ لِحُرِّيَّتِهِ،اودا خكه چې د مملوك زوې كیدل دده د آزادیٔ سبب دې إِمَّا إِجْمَاعًا یا د اجماع په وجه أَوْ صِلَةً لِلْقَرَابَةِ یا د صله رحمیٔ اود قرابت په وجه وَإِطْلَاقُ السَّبَبِ وَإِرَادَةُ الْمُسَبَّبِ مُسْتَجَازٌ فِي اللُّغَةِ تَجَوُّزًا او سبب وئیل او مسبب مراد اخستل په لغت كې مجاز دې

تشریح:- د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادې.چه دا كلام اګرچه د خپلې حقیقی معنی (بنوت) په اعتبار سره محال دې.خود مجازی معنی (حریت) په اعتبار سره صحیح دې.خكه چې مولا ددې خبرې خبر وركړې دې.چه كله زه ددې غلام مالك شوې یم.دا آزاد دې .او دا په دې وجه دې.چه د مملوك زوې كیدل، دده د آزادیٔ سبب دې.یعنی د مملوك لپاره د څوی كیدلو ثبوت هغه وخت كیدلې شی .كله چې دې آزاد وی .حاصل داچه

زوي کيدل د ازادئ سبب دې.يا خود اجماع د دليل په وجه،او يا د قرابت د صله په وجه.په دې وجه بنوت (زوې کيدل) صله رحمی واجب کوی .او آزادي ددې صله ده.نو بنوت آزادی واجب کوی .نو دلته کې سبب يعنی بنوت وئيلې شوې دې.او مسبب يعنی آزادي ترې مراد اخستې شوې ده.او سبب وئيل، او مسبب مراد اخستل مجاز دی.په دې وجه داکلام د خپلې مجازی معنی په اعتبار سره صحيح دې.

**وَلِأَنَّ الْحُرِّيَّةَ مُلَازِمَةٌ لِلْبُنُوَّةِ فِي الْمَمْلُوكِ** او خکه چې په مملوك کي د خوی کيدو لپاره آزادی لازم ده **وَالْمُشَابَهَةُ فِي وَصْفٍ** او په وصف لازم کي تشبيه ورکول **مُلَازِمٌ مِنْ طُرُقِ الْمَجَازِ** دمجاز په طريقو کي ( يوه طريقه ) ده.**عَلَى مَا عُرِفَ** لکه خنکه چې ( په اصول کي ) معلوم شوی دی **فَيُحْمَلُ عَلَيْهِ تَحَرُّزًا عَنِ الْإِلْغَاءِ** نو کلام د لغو کيدلو نه د بچ کاوه لپاره به په مجازی معنی باندې محمول کولې شی

**تشريح:-** دوهم دليل دادې.چه په مملوك کي د خوی کيدلو لپاره آزادی لازم ده.خکه چې زوې د خپل پلار مملوك نشی کيدلې.نو زوې کيدل ملزوم، او آزادی ددې لازم شو.او په لازم وصف سره تشبيه ورکول هم يو ډول مجاز دې.نوکلام د لغو کاوه نه د بچ کاوه لپاره په مجازی معنی باندې محمول کولې شي .يعنی په ملزوم ،،هذا ابنی ،، سره به ددې لازم يعنی ،،هذا حر،، مراد اخستلې شی . ددې

**بِخِلَافِ مَا اسْتَشْهَدَ بِهِ** په خلاف د هغه مسئلې چې په هغې سره صاحبينو رحمهما الله او امام شافعی رحمه الله شهادت پيش کړې دې **لِأَنَّهُ لَا وَجْهَ لَهُ فِي الْمَجَازِ** خکه چې په دې کي هيڅ طريقه د مجازنشته **فَتَعَيَّنَ الْإِلْغَاءُ** نو ددې لغو کيدل به متعين وی

**تشريح:-** په خلاف هغه مسئله ده.کومه چې صاحبينو او امام شافعی رحمهم الله په شهادت کي پيش کړې ده. يعنی «اعتقتك قبل أن أخلق يا قبل أن تخلق» دا په شهادت کي پيش کول درست نه دی .خکه چې د پيدا کيدلونه وړاندې آزادی ممکن نه ده.په دې وجه دې کلام کي د مجازهيڅ وجه نشته.نودا کلام لغو دې.اود استشهاد قابل نه دې.

**وَهَذَا بِخِلَافِ مَا إِذَا قَالَ لِغَيْرِهِ** اودا په خلاف ددې چې يو کس بل کس ته اووئيل **قَطَعْتُ يَدَكَ** چې ما( په غلطئ سره) ستا لاس کټ کړو **فَأَخْرَجَهُمَا صَحِيحَتَيْنِ** نو ده خپل دواړه لاسونه صحيح راوښکل او وې خودل **حَيْثُ لَمْ يُجْعَلْ مَجَازًا عَنِ الْإِقْرَارِ بِالْمَالِ وَالْتِزَامِهِ** نودا قول به په اقرار مال او التزام مال سره مجاز نشی ګرخولې **وَإِنْ كَانَ الْقَطْعُ سَبَبًا لِوُجُوبِ الْمَالِ** .اګرچه په خطاء سره لاس کټ کول، **لِأَنَّ الْقَطْعَ خَطَأً سَبَبٌ لِوُجُوبِ مَالٍ مَخْصُوصٍ وَهُوَ الْأَرْشُ**،مال مخصوص يعنی د ارش ( جرمانه) واجبولو سبب دې **وَأَنَّهُ يُخَالِفُ مُطْلَقَ الْمَالِ فِي الْوَصْفِ** اودا مطلق مال سره په يووصف کي مخالف دې **حَتَّى وَجَبَ عَلَى الْعَاقِلَةِ فِي سَنَتَيْنِ** تردې چې جرمانه عاقله ( مددګار خاندان) باندې په دوې [دوه] کاله کي واجبيږی **وَلَا يُمْكِنُ إِثْبَاتُهُ بِدُونِ الْقَطْعِ** او ددې جرمانې ثابتول د لاس کټ کاوه نه بغير ممکن نه دی **وَمَا أَمْكَنَ إِثْبَاتُهُ** اود کوم چې ثابتول ممکن وی **فَالْقَطْعُ لَيْسَ بِسَبَبٍ لَهُ** نو قطع ( د لاس کټ کول) ددې سبب نه دې **أَمَّا الْحُرِّيَّةُ** او پاتې شوه آزادی **فَلَا تَخْتَلِفُ ذَاتًا وَحُكْمًا** نو دا په ذات اوحکم کي مختلف نه ده. **فَأَمْكَنَ جَعْلُهُ مَجَازًا عَنْهُ** نو زوې وئيل، او مجازاً آزادی مراد اخستل ممکن دی .

**تشريح:-** «وهذا بخلاف ما اذا قال لغيره» دا عبارت د يو اشکال خواب دې.اشکال دادې.چه امام صاحب رحمه الله فرمائی .چه ملزوم وئيل او لازم مراد اخستل مجاز دې.اوکلام که د حقيقی معنی په اعتبارسره محال وی . نو په مجازی معنی به محمول کولې شی .خوموږ ګورو.چه امام صاحب رحمه الله په يوه مسئله کي به دې اصولو باندې عمل نه دې کړې.مسئله داده.چه يوکس بل کس ته اووئيل.چه ما په دهوکه سره ستا لاس کټ کړې دې.نوده خپل دواړه لاسونه صحيح سالم راوښکل. او وې خودل.دده دا کلام په مجاز باندې نشی محمول کولې.يعنی دا نشی وئيلې کيدلې.چه ده د يولاس د تاوان مقدار په خپل ځان باندې لازم کړې دې.حالانکه په خطاء سره لاس کټ کول، دمال واجب کيدلو سبب دې.نو سبب يعنی ،،قطعت يدك ،، وئيلو سره مسبب



يعنی د مال وجوب مراد اخستل پکار وو.لکه خنګه چې په ،،هذا ابنی ،، وئيلو سره ،،هذا حر،، مراد اخستلې شی .

خواب دادې.چه په خطاء سره لاس پرې کول يو خاص ډول مال يعنی د ارش (جرمانه) واجب کاوه سبب وی .د مطلق مال واجبولو سبب نه وی .اودا مخصوص مال يعنی ارش په يو وصف کي د مطلق مال مخالف دې.دا مخصوص مال يعنی ارش په عاقله (خاندان) باندې دوې [دوه] کاله کي واجب وی .او په مطلق مال کي داخبره نشته.اودا مخصوص مال کوم چې په عاقله باندې واجب وی .ددې ثبوت د لاس پرې کول نه بغير ممکن نه دې.او مطلق مال يعنی اقراری قرضه چې ددې ثبوت ممکن دې.خو لاس پرې کول ددې سبب نه دې.

حاصل داچه په دې صورت کي حقيقت اومجاز دواړه متعذر دی .دحقيقت متعذر کيدل خو ښکاره دی .خکه چې دده لاس کټ شوې نه دې.بلکه روغ جوړ او صحيح دې.او مجازاً خکه متعذر دې.چه په (خطاء سره لاس پرې کول ملزوم او ارش ( تاوان) ددې لازم دې.او ارش ملزوم او لاس پرې کول ددې لازم دې.او لازم يعني لاس پرې کول باطل دی .نو ملزوم يعنی ارش(جرمانه) به هم باطله وی .او پاتې شو د غلام په مسئله کي آزادی نوداً په ذات اوحکم کي مختلف نه دې.نو زوې وئيل، اومجازا آزادی مراد اخستل ممکن دی .

## کشرغلام يا وينځې ته پلار يا مور وئيل

**وَلَوْ قَالَ** اوکه ( داسې غلام يا وينځه) ته ئې اووئيل **هَذَا أَبِي أَوْ أُمِّي** چې دا زما پلار يا( دا) زما مور ده. **وَمِثْلُهُ لَا يُولَدُ لِمِثْلِهِمَا** حالانکه) ددوی نه دې پخپله نشی پيدا کيدلې **فَهُوَ عَلَى الْخِلَافِ** نو بيا هم دا اختلاف دې **لِمَا بَيَّنَّا** هغه دليل په وجه کوم چې موږ بيان کړو

**حل اللغة:** ① الابوة: پلارولی ② الابنوة: خويتوب]

**تشريح:-** مسئله داده.چه مولا خپل غلام يا وينځې ته (چه دده پخپله ددوی نه پيدا کيدل ناممکن وی ) او وئيل.چه دا زما پلار دې. يا دا زما مور ده.حالانکه دا دواړه دده نه په عمرکي کشران دی .يا په عمر کي برابر دی .يا يوکال دوې [دوه] مشران دی .نو هم دغه اختلاف دې.چه د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دې کلام سره آزاد واقع کيږی .اود صاحبينو رحمهما الله په نيز آزادی نه واقع کيږی .د فريقينو دلائل وړاندې تيرشو.

**وَلَوْ قَالَ لِصَبِيٍّ صَغِيرٍ** اوکه مالك يو وړوکی بچی ته اووئيل **هَذَا جَدِّي** چې دا زما نيکه دې **قِيلَ** نو وئيلی شوی دی .**هُوَ عَلَى الْخِلَافِ** چې دا هم په دې اختلاف باندې مبنی دې **وَقِيلَ: لَا يَعْتِقُ بِالْإِجْمَاعِ** او وئيلی شوی دی .چه بالاتفاق به آزاد نه وی **لِأَنَّ هَذَا الْكَلَامَ لَا مُوجِبَ لَهُ فِي الْمِلْكِ** خکه چې په مملوك کي په دې کلام سره هيڅ خبره نه لازميږی **إِلَّا بِوَاسِطَةٍ وَهُوَ الْأَبُ** خود پلار په واسطې سره **وَهِيَ غَيْرُ ثَابِتَةٍ فِي كَلَامِهِ** اود پلار واسطه په دې کلام کي ثابت نه ده **فَتَعَذَّرَ** .نودا خبره محال ده **أَنْ يُجْعَلَ مَجَازًا عَنِ الْمُوجَبِ** چې دا کلام مجازاً د آزادئ موجب اوګرخولې شی **بِخِلَافِ الْأُبُوَّةِ وَالْبُنُوَّةِ** په خلاف د پلارکيدلو،اود خوی کيدلو **لِأَنَّ لَهُمَا مُوجَبًا فِي الْمِلْكِ مِنْ غَيْرِ وَاسِطَةٍ** خکه په دې دواړو خبرو کي په مملوك کي بغير د څه واسطې نه د آزادئ موجب دې **وَلَوْ قَالَ** .اوکه اووئيلی شو **هَذَا أَخِي** چې دا زما رور دې **لَا يَعْتِقُ فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ** نو په ظاهرالرواية کي به نه آزاديږی **وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ يَعْتِقُ** .اود ابوحنيفه رحمه الله نه يو روايت دې.چه آزاديږی **وَوَجْهُ الرِّوَايَتَيْنِ مَا بَيَّنَّاهُ** اود دواړو روايتونو وجه موږ بيان کړې ده

**تشريح:-** اوکه مولا خپلو غلامانوکي يو نابالغه بچی ته اووئيل.چه دا زما نيکه دې.نو په دې صورت کي بعض مشائخ وائی .چه په دې کي هم دغه مذکوره اختلاف دې.او بعض وائی .چه اختلاف نشته.بلکه بالاتفاق نه آزاديږی .دليل دادې.چه په مملوك کي په دې کلام سره څه خبره نه لازميږی .خو چې کله د پلار په واسطه سره واخستې شی .نو بيا به د نيکه حق ثابتيږی .حالانکه دمولا په کلام کي ددې واسطې هيڅ څه

ذکر نشته.نودا خبره محال شوه.چه دا کلام مجازاً د ازادئ موجب اوګرځولې شي .په خلاف ددې قول چې دا زما پلار دې یا زما زوې دې.ځکه چې دا دواړه خبرې په مملوك کې بغیر د واسطې آزادی واجب کوی .اوکه مالك غلام ته اووئیل چه دا زما رور دې.نود ظاهرالروایة د حکم مطابق نه آزادیږی .اود امام ابوحنیفه رحمه الله نه دا روایت هم دې چه آزادیږی .اود دواړو روایتونو وجه موږ بیان کړې ده.چه د آزادئ د روایت وجه په «لأن البنوة فی المملوك سبب الحریة» سره، اود عدم عتق وجه په «لأن هذا الکلام لاموجب لـه فی الملـك إلا بواسطة» سره بیان کړې شوې ده.هلته کې ئې اوګورئ.

وَلَوْقَالَ لِعَبْدِهٖ اوکه خپل غلام ته ئې اووئیل هٰذَاابْنَتِیْ چې دا زما لور ده فَقَدْقِیْلَ نو وئیلی شوی دی عَلَی الْخِلَافِ چې (دا هم) مختلف فیه ده وَقِیْلَ هُوَبِالْاِجْمَاعِ .او وئیلی شوی دی .چه مجمع علیه ده لِأَنَّ الْمُشَارَالیهِ لَیْسَ مِنْ جِنْسِ الْمُسَمّٰی .ځکه چې مشارالیه د مسمی د جنس څخنې نه ده. فَتَعَلَّقَ الْحُکْمُ بِالْمُسَمّٰی نود حکم تعلق به د مسمی سره وی وَهُوَمَعْدُوْمٌ حالانکه دامعدوم دې فَلَایُعْتَبَرُ نو کلام به معتبر نه وی وَقَدْحَقَّقْنَاهُ فِی النِّکَاحِ او دا موږ په کتاب النکاح کې ثابت کړی دی .

تشریح:- او که خپل غلام ته ئې اووئیل.چه دا زما لور ده.نود بعضو خیال دې.چه دا صورت هم د امام صاحب اود صاحبینو رحمهم الله په مینځ کې مختلف فیه دې.او بعض وائی .چه په دې صورت کې به بالاتفاق غلام نه آزادیږی .د نه آزادیدلو دلیل دادې.چه په ،،باب المهر،، کې د «فإن تزوج إمرأة علی هذا الدن من الخل فـاذا هوخمر» لاندې تیرشوی دی .که مشارالیه د مسمی دجنس څخنې نه وی .نود حکم تعلق د مسمی سره وی .او چونکه په انسان کې مذکر اومؤنث د مختلف مقصدونو په وجه دوې [دوه] مختلف جنسونه دی .په دې وجه دې مسئله کې غلام، چې مشارالیه دې.او انجلی چې مسمی ده.د دواړو په جنس کې اختلاف دې.اود جنس د اختلاف په صورت کې حکم مسمی سره متعلق کیږی .حالانکه په دې مسئله کې مسمی یعنی انجلی معدوم ده.نودا کلام به معتبر نه وی .نه به حقیقتاً معتبر وی .او نه مجازاً .نوهرکله چې دا کلام بالکل معتبر نشو.نو په دې سره به غلام هم نه آزادیږی .

### په کنائی الفاظو سره د آزادولو نیت کول

وَاِنْ قَالَ لِأَمَتِهٖ اوکه مالك خپلې وینځې ده اووئیل أَنْتِ طَالِقٌ چې ته طالقه ئې أَوْبَائِنٌ یا بائنه ئې أَوْتَخَمَّرِیْ یا پتو (څادر) سره واچوه (مخ پټ کړه). وَنَوٰی بِهِ الْعِتْقَ او په دې سره ئې د آزادولو نیت اوکړو لَمْ تُعْتَقْ نودا به نه آزادیږی

حل اللغة:- ① یرتفع پورته کیږی ② اقوی زیات قوی ③ انساغ جواز ④ تاقیت وخت مقرر کول ⑤ تحریر آزادول ⑥ المتنازع هغه څیزپه کوم کې چې اختلاف وی ]

تشریح:- مسئله داده که مولا خپلې وینځې ته اووئیل ،،انت طالق،، یا ،،انت بائن،، یا ،،تخمری ،، یعنی په پتو (څادر) سره خپل مخ پټ کړه.او په دې سره ئې د آزادولو نیت اوکړلو.نودا وینځه نه آزادیږی .

وَقَالَ الشَّافِعِیُّ رَحِمَهُ اللّٰهُ امام شافعی رحمه الله فرمائی تُعْتَقُ چې دا آزادیږی إِذَانَوٰی .که مولا نیت اوکړی وَکَذَا عَلٰی هٰذَا الْخِلَافِ سَائِرُ أَلْفَاظِ الصَّرِیْحِ وَالْکِنَایَةِ او په پاته نورو الفاظو د طلاق په صریحی اوکنایه کې هم دا اختلاف دې عَلٰی مَاقَالَ مَشَایِخُهُمْ رَحِمَهُمُ اللّٰهُ لکه څنګه چې شافعی مشائخو رحمهم الله بیان کړی دی

تشریح:- امام شافعی رحمه الله فرمائی .که نیت اوکړی نو آزادیږی .هم دا اختلاف د طلاق په ټولو الفاظوکې دې که صریح وی .او که کنائی وی .لکه چې شافعی مشائخو رحمهم الله بیان کړی دی .مثلاً خپلې وینځې ته اووائی . «انت مطلقة، طلقتك، تقنعی، اغربی، انت بریة، أنـت خلیـة» وغیره.د امام احمد رحمه الله نه دوې [دوه] روایتونه دی .یو یو کې د احنافو رحمهم الله سره دې او په یوکې د شوافعو رحمهم الله سره دې.



لَهٗ د امام شافعی رحمه الله دلیل دادې أَنَّهٗ نَوٰی مَا چې مولا دداسې معنی نیت کړې دې یَحْتَمِلُهٗ لَفْظُهٗ چې دا لفظ ددې احتمال لری لِأَنَّ بَیْنَ الْمِلْکَیْنِ مُوَافَقَةً ځکه چې د دواړو ملکونو په مینځ کې موافقت دې إِذْکُلُّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا مِلْكُ الْعَیْنِ ځکه چې دواړوکې هریو ذاتی ملك دې أَمَّا مِلْكُ الْیَمِیْنِ فَظَاهِرٌ (چه) ملك یمین (کې دا خبره) ښکاره ده وَکَذٰلِكَ مِلْكُ النِّکَاحِ فِیْ حُکْمِ مِلْكِ الْعَیْنِ اوهم دغه ډول په ملك نکاح کې هم دملك ذات په حکم کې دی. حَتّٰی کَانَ التَّأْبِیْدُ مِنْ شَرْطِهٖ تردې چې دنکاح شرط دادې چې دهمیشه لپاره وی وَالتَّاْقِیْتُ مُبْطِلًا لَّهٗ او: وخت تعیین دا باطلونکې دې

تشریح:- د امام شافعی رحمه الله دلیل دادې.چه مولا په خپل کلام سره داسې معنی مراد اخستې ده.چه هغې ته دده کلام محتمل دې.ځکه چې په ملك رقبه او په ملك نکاح کې خپل منځ کې موافقت دې.او موافقت په دې طریقه دې.چه په دې دواړوکې هریو ملك عین (ذاتی ) دې.په ملك رقبه کې ملك عین کیدل بالکل ښکاره دی .او پاتې شو ملك نکاح، نودا هم د ملك عین په حکم کې دې.تردې چې د نکاح شرط دادې.چه د همیشه لپاره نیت اوکړی .لکه څنګه چې د بیع په عقدکې تابید (همیشوالې) شرط دې.او که نکاح د معین وخت لپاره وی .نو باطلیږی .نوثابته شوه.چه ملك نکاح شرعاً د ملك عین په حکم کې ده.

وَعَمَلُ اللَّفْظَیْنِ او د دواړو لفظونو عمل دادې فِیْ إِسْقَاطِ مَا هُوَحَقُّهٗ وَهُوَالْمِلْكُ چې دده حق یعنی ملك ساقط کړی وَلِهٰذَا یَصِحُّ التَّعْلِیْقُ فِیْهِ بِالشَّرْطِ اوهم ددې لپاره آزادول په شرط باندې معلق کول صحیح کیږی أَمَّا الْأَحْکَامُ فَتَثْبُتُ بِسَبَبٍ سَابِقٍ بهرحال احکام خو په تیرشوی سبب سره ثابتیږی وَهُوَکَوْنُهٗ مُکَلَّفًا او دې ددې مکلف وی ، وَلِهٰذَا یَصْلُحُ لَفْظَةُ الْعِتْقِ وَالتَّحْرِیْرُ کِنَایَةً عَنِ الطَّلَاقِ او چونکه لفظ د عتق اوتحریر د طلاق کنایه جوړیږی فَکَذَا عَکْسُهٗ .په دې وجه به ددې په عکس صحیح وی

تشریح:- دا عبارت د یوسوال ځواب دې.سوال دادې.چه اعتاق (آزادول) نوم دې، په غلام کې د قوت ثابتولو.په اعتاق سره هغه احکام ثابتیږی .کوم چې د اعتاق نه وړاندې ثابت نه وو.مثلاً د آزادئ نه روسته غلام د اخستلو خرڅولو مالك کیږی .د شهادت اود قضاء اهل جوړیږی .اوده ته د ولایت حق حاصلیږی . او د قوت شرعی هم دا معنی ده.اوطلاق د اسقاط محضه نوم دې.یعنی د طلاق په ذریعه صرف د خاوند ملك نکاح ساقطیږی .حاصل داشو.چه اعتاق د قوت ثابتولو نوم دې.او طلاق د اسقاط محضه نوم دې.په دې وجه دې دواړوکې هیڅ مناسبت نشته.نود طلاق په کنائی الفاظوسره به مجازاً اعتاق مراد اخستل څنګه درست وی .

ؤ د امام شافعی رحمه الله د اړخه ځواب دادې.چه په دواړه لفظونو یعنی په طلاق اوعتاق کې د هریو عمل دادې.چه دده حق ساقط کړی . یعنی ملك زائل کړی .نولکه څنګه چې د طلاق په لفظ سره ملك د نکاح زائل کیږی .دغه ډول په لفظ دعتاق سره ملك رقبه زائل کیږی .حاصل داچه اعتاق هم د طلاق پشان اسقاط دې.او چې اعتاق اسقاط دې.نوپه دې وجه اعتاق په شرط باندې معلق کول صحیح دی .لکه څنګه چې طلاق په شرط باندې معلق کول صحیح دی .نو لنډیز داشوه.چه د طلاق او اعتقا په مینځ کې مناسب موجود دې.او هرکله چې مناسبت موجود دې.نود طلاق الفاظ د آزادئ په معنی کې مجازاً استعمال کیدلې شي .او پاتې شو د احکامو ثابتول،نودا په تیرشوی سبب سره کیږی .یعنی د سړی مکلف عاقل، بالغ، او آزاد کیدل.یعنی د احکامو ثبوت د آدمیت (انسانیت) په وجه کیږی .خو رقیت د احکامو د ثبوت لپاره مانع وو.نود اعتاق په وجه چې کله مانع زائل شو.نو هم په هغه زوړ سبب یعنی د آدمیت په وجه به احکام ثابتیږی .نو ثابته شوه.چه اعتاق د قوت د ثبوت نوم نه دې.بلکه د طلاق پشان د اسقاط نوم دې.نو چونکه د طلاق او عتاق په الفاظوکې مناسبت دې.نولکه څنګه چې د عتاق په الفاظوسره طلاق مراد اخستل مجازا صحیح دی .دغه ډول د طلاق په الفاظو سره د آزادولو معنی مراد اخستل هم صحیح کیږی .یعنی که یوکس خپلې

ښځي ته ،،انت حرة،، اوونیل.اود طلاق نیت ئې اوکړو.نو طلاق واقع کیږي .دغه ډول که یوکس خپلې وینځي ته ،،انت طالق،، اووائي .اود آزادولو نیت ئې اوکړلو.نو دې به آزادیږي .

وَلَنَا او زموږ دلیل دادې أَنَّهُ نَوَى چې ده داسې معنی مراد اخستې ده. مَا لَا يَحْتَمِلُهُ لَفْظُهُ چې ددې لفظ ددې احتمال نه لري . لِأَنَّ الْإِعْتَاقَ لُغَةً إِثْبَاتُ الْقُوَّةِ خکه چې په لغت کې اعتاق قوت ورکول دی وَالطَّلَاقَ رَفْعُ الْقَيْدِ او طلاق هتکړئ (بیړئ) کولاوول دی وَهَذَا لِأَنَّ الْعَبْدَ أُلْحِقَ بِالْجَمَادَاتِ اودا خکه چې غلام جماداتو سره لاحق کړې شویدې وَبِالْإِعْتَاقِ يَحْيَا اود آزادولو په وجه ژوندې کیږي فَيَقْدِرُ او قدرت او قوت بیامومي وَلَا كَذَلِكَ الْمَنْكُوحَةُ اود منکوحه دا حال نه دې فَإِنَّهَا قَادِرَةٌ خکه چې دا(په هرتصرف باندې) قادر ده إِلَّا أَنَّ قَيْدَ النِّكَاحِ مَانِعٌ خود نکاح قید ئې منع کوي وَبِالطَّلَاقِ يَرْتَفِعُ الْمَانِعُ اود طلاق په وجه مانع مرتفع شو. فَتَظْهَرُ الْقُوَّةُ نو ددې قوت به ښکاره کیږي وَلَا خَفَاءَ أَنَّ الْأَوَّلَ أَقْوَى او هیڅ خفاء نشته.چه ړومبې اقوی دې

تشريح:- زموږ دلیل دادې.چه مولا په ،،انت طالق،، یا ،،بائن،، یا د طلاق په نورو الفاظوسره داسې معنی مراد واخستله.چه دا الفاظ ددې معنی احتمال نه لري .یعنی د طلاق او اعتاق په مینځ کې هیڅ مناسبت نشته.خکه چې په لغت کې د اعتاق معنی قوت ورکول دی .اود طلاق معنی د نکاح قید ختمول دی .اود اعتاق معنی د ،،قوت ثبوت،، خکه ده.چه کوم کس مملوك او غلام شي .دې په منزله د جماداتو شي .اود آزادیدلوپه وجه ژوندې کیږي .او توان او قوت پیدا کیږي .اود منکوحه ښځې دا حال نه دې.خکه چې دا په هرتصرف باندې قادره وي .خود نکاح قید دا د تصرف کاوه نه منع کوي .نوهرکله چې ئې دې ته طلاق ورکړو.نودا مانع ختم شو.اود مانع په ختمیدلو سره ددې قوت ښکاره کیږي .اودا خبره ،،اظهر من الشمس،، ده.چه اعتاق اقوی دې.او طلاق ادنی دې.او قاعده ده.چه ادنی د اعلی لپاره مستعارنشي اخستلې.په دې وجه د طلاق لفظ مجازا د آزادیدلو په معنی کې نه استعمالیږي .

وَلِأَنَّ مِلْكَ الْيَمِينِ فَوْقَ مِلْكِ النِّكَاحِ او خکه چې ملك یمین د ملك نکاح نه زیات دې فَكَانَ إِسْقَاطُهُ أَقْوَى نو ددې ساقطول به هم زیات قوی وي وَاللَّفْظُ يَصْلُحُ مَجَازًا عَمَّا هُوَ دُونَ حَقِيقَتِهِ او لفظ د خپل حقیقت نه دکمتر لپاره مجاز وي لَا عَمَّا هُوَ فَوْقَهُ د هغه لپاره نه کوم چې ددې نه زیات وي فَلِهَذَا امْتَنَعَ فِي الْمُتَنَازَعِ فِيهِ .نوهم په دې وجه به په متنازع فیه کې ممتنع وي وَانْسَاغَ فِي عَكْسِهِ او ددې په عکس کې به جائز وي .

تشريح:- دوهم دلیل دا دې.چه ملك رقبه په نسبت د ملك نکاح زیات وي .خکه چې ملك یمین ملك نکاح ته مستلزم وي .خوملك د نکاح ملك یمین ته مستلزم نه وي .نوهرکله چې ملك یمین اقوی دې.نو ددې ساقطول به هم اقوی وي .خکه چې کوم شي اقوی وي .د هغې اسقاط هم اقوی وي .اولفظ د خپل حقیقت نه د کمتر لپاره مجاز وي .خود خپل حقیقت نه د زیات لپاره مجاز نه وي .نو ثابته شوه.چه په مختلف فیه مسئله کې په ،،انت طالق،، وئیلو سره مجازاً آزادی مراد نشي اخستلې.البته ددې په عکس جائز دې.یعنی ښځې ته ،،انت حرة،، وئیلو سره مجازاً طلاق مراد اخستلې شي .والله أعلم بالصواب

### د آزادئ مشابه کولوسره د آزادئ نیت کول

وَإِذَا قَالَ لِعَبْدِهِ او که خپل غلام ته ئې اوونیل أَنْتَ مِثْلُ الْحُرِّ چې ته د آزاد مثل ئې لَمْ يُعْتَقْ نو آزاد به نه وي لِأَنَّ الْمِثْلَ يُسْتَعْمَلُ لِلْمُشَارَكَةِ فِي بَعْضِ الْمَعَانِي عُرْفًا خکه چې لفظ مثل عرفاً په بعض معانو کې د مشارکت لپاره راخی فَوَقَعَ الشَّكُّ فِي الْحُرِّيَّةِ نو (ده) په آزادولو کې شك شو

حل اللغة:① المشاركة: شرکت کول ② الحرية: آزادی ]

تشريح:- صورت د مسئلې دادې.که مولا خپل غلام ته اوونیل،،انت مثل الحر،، نو غلام نه آزادیږي . دلیل دادې.چه لفظ د ،،مثل،، په عرف عام کې په بعض اوصافوکې مشترك کیدلو لپاره راخی .نو معلومه نه



ده.چه غلام ازاد سره په کوم وصف کې تشبیه ورکړې شوې ده.په دې وجه په آزادیدلوکې شك شو .اود شك په وجه آزادی نه واقع کیږي .په دې وجه دې کلام سره غلام نه آزادیږي .که د آزادولو نیت ئې کړې وي .او که نه ئې وي کړې.او په مبسوط کې ذکر دی .که نیت ئې نه وي کړې.بیا خو نه آزادیږي .خو که د آزادیدلو نیت ئې کړې وي .نو غلام آزادیږي .خکه چې د آزادئ نه واقع کیدل د شك په وجه وو.خوچه کله ئې د آزادیدلو نیت اوکړلو.نو شك ختم شو.

وَلَوْ قَالَ: مَا أَنْتَ إِلَّا حُرٌّ عَتَقَ اوکه وې وئیل.ته نه ئې مګر آزاد ،نودا به آزاد وي لِأَنَّ الِاسْتِثْنَاءَ مِنَ النَّفْيِ إِثْبَاتٌ عَلَى وَجْهِ التَّأْكِيدِ خکه چې د نفی نه استثناء کول د تاکید په طور باندې اثبات وي كَمَا فِي كَلِمَةِ الشَّهَادَةِ لکه څنګه چې په کلمه شهادت کې دی

تشريح:- او که مولا خپل غلام ته اوونیل،، ما انت الا حر،،نو غلام آزادیږي .خکه چې د نفی نه استثناء کول د تاکید په طور اثبات وي .لکه څنګه چې په کلمه شهادت ﴿لا إله إلا الله﴾ کې دې.یعن د ﴿لا إلـه إلا الله﴾ معنی داده.چه د ،،الوهیت،، والا دې.دغه ډول د ،، ما انت الا حر،،معنی ده.چه ته ضرور آزاد ئې.او که مولا اوونیل،،راسك راس،، د جر په اضافت سره.نودا نه آزادیږي .خکه چې د حرف تشبیه په حذف کولوسره دا تشبیه ده.اصل عبارت داسې وو.،، راسك كراس،،او په ړومبئ مسئله کې به هم نه آزادیږي

وَلَوْ قَالَ رَأْسُكَ رَأْسُ حُرٍّ اوکه وې وئیل،چه ستا سره د آزاد سر دې لَا يُعْتَقُ نودا به آزاد نه وي لِأَنَّهُ تَشْبِيهٌ بِحَذْفِ حَرْفِهِ خکه چې په حرف تشبیه حذف کاوه سره دا تشبیه ده وَلَوْ قَالَ اوکه وې وئیل رَأْسُكَ رَأْسُ حُرٍّ چې ستا سر آزاد دې عَتَقَ نودا به آزاد وي لِأَنَّهُ إِثْبَاتُ الْحُرِّيَّةِ فِيهِ خکه دا وئیل په خپل غلام کې آزادی ثابتول دی إِذِ الرَّأْسُ يُعَبَّرُ بِهِ عَنْ جَمِيعِ الْبَدَنِ خکه چې په سر سره واړه بدن تعبیر کولې شي

تشريح:- او که مولا خپل غلام ته اوونیل،، راسك راس حر،، په ترکیب توصیفی سره، نو غلام آزادیږي . خکه چې په دې صورت کې په راس کې آزادی ثابت شوې ده.او ،، راس،، د انسان په هغه اجزاؤ کې دې.چه په دې سره واړه بدن تعبیر کولې شي .وړاندې دا قاعده بیان کړې شوې ده. چې په کومو اندامونوسره واړه بدن تعبیر کیدلې شي .که دې اړخ ته آزادی منسوب کړې شوه.نو پوره غلام آزادیږي .لکه څنګه چې په طلاق کې کیږي .

### د ذی رحم محرم مالك کیدلو سره آزادی

فصل : وَمَنْ مَلَكَ ذَا رَحِمٍ مَحْرَمٍ مِنْهُ اوکوم کس چې دخپل ذی رحم محرم مالك شو عَتَقَ عَلَيْهِ نوهغه په ده باندې آزادیږي وَهَذَا اللَّفْظُ مَرْوِيٌّ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ(١) اودا لفظ د نبی کریم ﷺ نه نقل دې وَقَالَ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ مَلَكَ ذَا رَحِمٍ مَحْرَمٍ مِنْهُ (٢)چه کوم کس د خپل ذی رحم محرم مالك شو فَهُوَ حُرٌّ نو هغه آزاد دې

حل اللغة:① موبدة: همیشوالې ② يضاهي:یوشان ③نازلة :واقع کیدونکې ④ الافتراض: فرض کول ⑤ الالحاق:ملحق کول]

تشريح:- مصنف رحمه الله وړاندې اعتاق اختیاری بیان کړلو.اوس په دې فصل کې هغه اعتاق بیانوي .چه بغیر د اختیاره ثابتیږي .لکه مثلاً څوك قرابتی اخستل، او هغه غلام چې مسلمان شي .اود دارحرب نه داراسلام ته راشي .

(١) من حديث ابن عمر رضي الله عنهما أخرجه النسائي في السنن الكبرى (١٧٣\٣) رقم ٤٨٩٧٦_

(٢) من حديث سمرة رضي الله عنه أخرجه أبوداود في العتق باب ٧ رقم ٣٩٤٩ والترمذي في الأحكام باب ٢٨ وابن ماجه في العتق باب ٥ رقم ٢٥٢٤ والنسائي في السنن الكبرى (١٧٣\٣) رقم ٤٨٩٨)_

قدوری مسئله بیان کړله.چه څوك د خپل ذی رحم محرم مالك شی .نودا ذی رحم محرم په ده باندې آزادیږی .د قدوری داعبارت د نبی کریمﷺ نه نقل، دي.د نبی کریمﷺ ارشاد دې.«من ملك ذا رحم محرم منه فهو حر» قدوری چې د حدیث کوم الفاظ ذکر کړی دی .دا امام نسائی رحمه الله د ابن عمر رضی الله عنهما نه روایت کړی دی .اود «فهو حر» په الفاظوسره چې کوم حدیث علامه مرغینانی رحمه الله ذکر کړې دې.دا اصحاب د سنن اربعه د حضرت سمرهﷺ نه روایت کړې دې.په حدیث کې دوې [دوه] لفظونه ،،رحم او محرم،، قابل ذکر دی .رحم په حقیقت کې د مور په نس کې د بچی لپاره ظرف (لوخې) وی .بیا د ولادت د قرابت او تعلق په وجه ددې نوم رحم کیخودلې شو.او ذوالرحم هم ددې څنې دې.اومحرم دادې.که یو سړې وی .او بله ښځه وی .نو په دوی کې نکاح جائز نه وی .(عنایه ص۱۲)

**وَاللَّفْظُ بِعُمُومِهِ يَنْتَظِمُ كُلَّ قَرَابَةٍ** او( دا) دخپل عموم په، وجه هریو داسې قرابتی ته ګډ دې **مُؤَبَّدَةٍ بِالْمَحْرَمِيَّةِ** چې دده محرمیت ابدی او همیشه وی **وِلَادًا** که) په طریقه د ولایت وی **أَوْ غَيْرَهُ** اوکه په بله یوه طریقه وی .

**تشریح:-** د حدیث الفاظ عام دی .دا هرهغه قرابت دار ته ګډ دی .چه دې سره دائمی حرمت وی .که د ولادت په طریقه وی .او که د ولادت د طریقې نه بغیر وی .د ولادت په صورت کې دادې.چه زوې یا لور، د خپل مورپلار یا د انا نیکه مالکان شو.یا دا خلګ ه د خپل خوی ، لور یا د نمسو مالکان شو.اود ولادت نه غیر صورت دادې.چه سړې د خپل رور خور یا ددوی د اولاد مالك شی .یا ددې په عکس وی .

**وَالشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللَّهُ يُخَالِفُنَا فِي غَيْرِهِ** او امام شافعی رحمه الله په غیرولاد کې زموږ مخالف دې **لَهُ** د امام شافعی رحمه الله دلیل دادې. **أَنَّ ثُبُوتَ الْعِتْقِ مِنْ غَيْرِ مَرْضَاةِ الْمَالِكِ يَنْفِيهِ الْقِيَاسُ** چې دمالك د مرضئ نه بغیر آزادیدل قیاس نفی کوی **أَوْ لَا يَقْتَضِيهِ** یا قیاس ددې تقاضا نه کوی **وَالْأُخُوَّةُ وَمَا يُضَاهِيهَا نَازِلَةٌ عَنْ قَرَابَةِ الْوِلَادَةِ** او رور کیدل یا ددې پشان ( قرابت) د قرابت ولاد نه کمتر دې. **فَامْتَنَعَ الْإِلْحَاقُ أَوِ الِاسْتِدْلَالُ بِهِ** نو لاحق کول او استدلال کول ممتنع شو. **وَلِهَذَا امْتَنَعَ التَّكَاتُبُ عَلَى الْمُكَاتَبِ فِي غَيْرِ الْوِلَادِ** اوهم په دې وجه په غیر ولاد کې مکاتب باندې تکاتب ممتنع دې. **وَلَمْ يَمْتَنِعْ فِيهِ** او په قرابت ولاد کې ( دا خبره) ممتنع نه ده

**تشریح:-** حضرت امام شافعی رحمه الله د ولادت نه بغیر قرابت کې زموږ خلاف دې.یعنی که د داسې قریبی محرم مالك شو.چه ده سره د ولادت قرابت نه وی .نودا د امام شافعی رحمه الله په نیز نه آزادیږی .او زموږ په نیز آزادیږی .

د امام شافعی رحمه الله دلیل دادې.چه د مالك د مرضئ نه بغیر آزادی ثابتول خلاف قیاس دی .یا د قیاس د مقتضی خلاف دې.او کوم شی چې خلاف قیاس وی .په دې باندې بل څه شی نشی قیاس کیدلې. او هم دغه شان چې کوم شی د قیاس د مقتضی خلاف وی .دې سره بل څه شی هغه وخت لاحق کولې شی .چه کله ،،ملحق من کل وجه،، د ،،ملحق به،، په معنی کې وی .حالانکه دلته کې داسې نه ده.ځکه چې د رورکیدلو، یا ددې پشان د اکا او ماما کیدلوقرابت، د ولادت د قرابت نه ادنی اوکمتر دې.نو ددې عدم مساوات په وجه د ولادت نه بغیر قرابت، یعنی د رور وغیره کیدلو قرابت، د ولادت قرابت سره لاحق کول، یا د دلالت النص په ذریعه استدلال کول ممتنع دی .هم ددې توپیر په وجه که مکاتب خپل رور یا ددې پشان بل څوك د ولادت نه بغیر قرابت دار واخستلو.یا په بل څه وجه مالك شو.نودا دده مکاتب نشی کیدلې حالانکه که مکاتب د خپل پلار یا د خوی مالك شی .نودا هم مکاتب کیږی .نو ثابته شوه.چه د ولادت نه بغیر قرابت، د ولادت په قرابت باندې قیاس کول ممتنع دی .

**وَلَنَا مَا رَوَيْنَا** او زموږ دلیل هغه حدیث دې.کوم چې موږ روایت کړې دې **وَلِأَنَّهُ مَلَكَ قَرِيبَهُ** اوځکه چې دې دخپل داسې قرابتی مالك شو **قَرَابَةً مُؤَثِّرَةً فِي الْمَحْرَمِيَّةِ** چې دده قرابت په دائمی محرمیت کې مؤثر دې **فَيَعْتِقُ عَلَيْهِ** نوهغه به په ده باندې آزادیږی **وَهَذَا هُوَ الْمُؤَثِّرُ فِي الْأَصْلِ** او په اصل کې هم دا مؤثر دې **وَالْوِلَادُ مُلْغًى** او ولادت



ملغی ( غیرموثر) دې **لِأَنَّهَا هِيَ الَّتِي يُفْتَرَضُ وَصْلُهَا** په دې وجه قرابت محرمیت یوداسې شی دې.چه ددې ملاوول فرض دی **وَيَحْرُمُ قَطْعُهَا** او ددې ماتول حرام دی **حَتَّى وَجَبَتِ النَّفَقَةُ** تردې چې نفقه واجبیږی **وَحَرُمَ النِّكَاحُ** او نکاح حرامیږی

**تشریح:-** زموږ رومبې دلیل هغه حدیث دې.کوم چې موږ روایت کړې دې.یعنی «من ملك ذارحم محرم من عتق علیه» چونکه دا حدیث مطلق دې.په دې وجه د ولادت قرابت، اود ولادت نه بغیر قرابت دوارو ته شاملیږی دوهم دلیل دادې.چه کله داکس د خپل قرابت دار مالك شو.دکوم کس قرابت چې په دائمی حرمت کې مؤثر دی .نودا په ده باندې آزادیږی .او په اصل یعنی د ولادت په قرابت کې د محرمیت قرابت مؤثر دې.اود ولادت هیڅ اثر نشته.حاصل داچه شارعﷺ د هغه قرابت اعتبار کړې دې.کوم چې په دائمی حرمت کې موثر دی .فرمائی .چه په «من ملك ذا رحم محرم منه عتق علیه» کې د رحم نه مراد قرابت،اود محرم نه مراد حرمت د نکاح دې.لکه چې نبی کریمﷺ اوفرمائیل.چه کوم کس د داسې قریب مالك شو.د کوم کس سره چې نکاح دائمی طور باندې حرام ده.نودا په ده باندې آزادیږی .که د ولادت تعلق اوموندې شی .او که اونه اوموندې شی .نو ثابته شوه.چه د ولادت په قرابت کې هم د آزادئ په ثابتولوکې د قریب محرم مالك کیدل مؤثر دی .اوپه آزادی واقع کیدلوکې د ولادت قرابت هیڅ دخل نشته.ځکه چې دمحرمیت قرابت یو داسې شی دې.چه ددې وصل (جوړ ساتل) فرض دی .او ددې قطع (پریکول) حرام ده.تردې چې د قریب محرم نفقه واجب ده.او دې سره نکاح حرام ده.

**وَلَا فَرْقَ بَيْنَ مَا** او په دې دواړو صورتونوکې هیڅ توپیر نشته **إِذَا كَانَ الْمَالِكُ مُسْلِمًا** چې مالك مکان مسلمان وی **أَوْ كَافِرًا فِي دَارِ الْإِسْلَامِ** یاپه دارالاسلام کې کافر وی **لِعُمُومِ الْعِلَّةِ** ځکه چې علت عام دې

**تشریح:-** علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی .چه په داراسلام کې که مالك مسلمان وی .او که کافر وی . په دواړه صورتونوکې د قریبی ملك په وجه مملوك آزادیږی .دغه ډول که مملوك مسلمان وی .او که کافر وی . ځکه چې د قرابت محرمه علت عام دې.د داراسلام قید ځکه ذکر شوې دې.چه مسلمان که خپل حربی غلام په دارحرب کې آزاد کړلو.نودا په ده باندې نه آزادیږی .دغه ډول حربی سړې که په دارحرب کې د خپل ذی رحم محرم مالك شو.نودا په ده باندې نه آزادیږی .(عنایه)

**وَالْمُكَاتَبُ إِذَا اشْتَرَى أَخَاهُ** اوکه مکاتب خپل رور یا ددې پشان ( اکا یا ماما) واخستلو.نودا به په مکاتب باندې نه مکاتب کیږی **وَمَنْ يَجْرِي مَجْرَاهُ لَا يَتَكَاتَبُ عَلَيْهِ لِأَنَّهُ لَيْسَ لَهُ مِلْكٌ تَامٌّ** ځکه چې دمکاتب لپاره ملك تام نه دې **يَقْدِرُهُ عَلَى الْإِعْتَاقِ** چې دده په آزادولو باندې ده ته قدرت ورکړی . **وَالِافْتِرَاضُ عِنْدَ الْقُدْرَةِ** او ( مسئله) دقدرت په وخت فرض کړې شوې ده

**تشریح:-** «والمکاتب اذا اشتراه اخاه ومن یجری مجراه» دا عبارت د امام شافعی رحمه الله د استدلال د «ولهذا إمتنع التکاتب علی المکاتب فی غیرالولاد» ځواب دې حاصل دادې.چه اول خو موږ دا خبره نه منو.چه مکاتب که خپل رور یا دده پشان اکا یا ماما وغیره واخستلو.نودا د مکاتب سره نه مکاتب کیږی .بلکه د امام ابوحنیفه رحمه الله نه نقل دی .چه مکاتب که خپل رور وغیره، یعنی د ولادت نه بغیر قرابت دار نې واخستلو.نودا به هم د مکاتب سره مکاتب کیږی .اوکه دا اومنو.نود نه مکاتب کیدلو وجه داده.چه مکاتب ته څه پوره ملکیت حاصل نه وی .چه هغه ده ته په آزادولو باندې قدرت ورکړی .ځکه چې په مکاتب باندې ترکوم وخته پورې یو درهم هم پاته وی .نودا به غلام وی .اوکوم کس چې د آزادولو قدرت نه لری .په ده به بل څوك هم نه آزادیږی .ځکه چې مسئله هغه وخت فرض کړې شوې ده.چه کله د آزادولو پوره قدرت حاصل وی .خو که څوك اشکال اوکړی .چه واقعی که داخبره وی .نود ولادت قرابت دار هم په ده باندې آزادیدل بکار نه دی . حالانکه دې آزادیږی .نو په «خلاف الولاد» سره مصنف د هدایه رحمه الله ځواب ورکړې

دي.حاصل دځواب دادي.چه دولادت په قرابت داري کي د ازادیدلو نه مقصود کتابت دي.ځکه چي کله د خپل ځان آزادولو نه مراد کتابت دي.نود ولادت قرابت دار آزادولو څخه به هم مراد کتاب وی .ځکه چي انسان ځنګه د خپل ځان مملوك کیدلو نه عار او شرم محسوسوی .دغه ډول د پلار او خوی په مملوك کیدلو سره هم شرم محسوسوی .نو هرکله چې د ولادت د قرابت آزادولو نه مراد کتابت دي.نو مکاتب که خپل ولادی قرابت دار یعنی پلار وغیره واخستلو.نودا به هم مکاتب وی .او دده خرڅول به ممتنع وی .او کله چې مکاتب بدل کتابت ادا کړی .او آزاد شی .نودا به هم آزادیږی .چه د کتابت مقصد ثابت شی .

بِخِلَافِ الْوِلَادِ په خلاف د ولادت لِأَنَّ الْعِتْقَ فِيهِ مِنْ مَقَاصِدِ الْكِتَابَةِ ځکه چې د کتابت په مقاصدوکي دده آزادی هم ده فَامْتَنَعَ الْبَيْعُ نو بیع ممتنع ده فَيُعْتَقُ نودا به آزاد وی تَحْقِيقًا لِمَقْصُودِ الْعَقْدِ چې د عقدکتابت مقصود ثابت شی وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ او د ابوحنیفه رحمه الله نه داروایت هم دي أَنَّهُ يَتَكَاتَبُ عَلَى الْأَخِ أَيْضًا چې په مکاتب باندي دده رور هم مکاتب کیږی وَهُوَ قَوْلُهُمَا اوهم دا د صاحبینو رحمهما الله قول دي قُلْنَا نو موږ ته دا اختیار هم دي أَنْ نَمْنَعَ چې موږ ( د رور نه مکاتب کیدل) منع کړو

تشریح:- او پاتې شو قرابت غیر ولاد ، یعنی د رور وغیره آزادی نودا د کتابت په مقاصدوکي نه دي.ځکه چې ځنګه د پلار اوخوی په مملوك کیدلو سره شرم محسوسیږی .د رور په مملوك کیدلو سره داسې شرم نه محسوسیږی .(عنایه،عینی )

د ځواب په پیل کي هم ذکرشوی دی .چه د امام ابوحنیفه رحمه الله نه یوروایت داهم دي.چه په مکاتب باندي دده رور هم مکاتب کیږی .اودا د صاحبینو رحمهما الله قول هم دي.نو امام شافعی رحمه الله چې کومه امتناع بیان کړې وه.موږ دا منو.ځکه چې موږ دا ممتنع نه ګڼړو.

وَهَذَا بِخِلَافِ مَا اودا په خلاف د هغه صورت، إِذَا مَلَكَ ابْنَةَ عَمِّهِ چې کله سړي د خپلي ترور د لور مالك شی وَهِيَ أُخْتُهُ مِنَ الرَّضَاعِ حالانکه دا دده رضاعی خور ده لِأَنَّ الْمَحْرَمِيَّةَ مَا ثَبَتَتْ بِالْقَرَابَةِ ځکه چې دا محرمیت دقرابت په وجه ثابت نه دي

تشریح:- «وهذا بخلاف ما اذا ملك ابنة عمه» سره هم د یوسوال ځواب دي.سوال دادي.که د ذی رحم محرم مالك کیدل دده د آزادولو علت وی .په هغه کس باندي څوك چې دده مالك شوي دي.نود اکا لور چې دده رضاعی خور هم ده.دا د خپل اکا په خوی باندي آزادیدل پکار دی .که دي دا واخلی .حالانکه دا نه آزادیږی .؟ځواب دا دي.چه د محرمیت نه هغه محرمیت مراد دي.چه په هغې کي قرابت موثر وی .اودا داسې نه ده.ځکه چې محرمیت د رضاعت په وجه دي.د قرابت په وجه نه دي.

وَالصَّبِيُّ جُعِلَ أَهْلًا لِهَذَا الْعِتْقِ او بچې هم ددې آزادئ اهل ګرځولي شوي دي. وَكَذَا الْمَجْنُونُ اودا د مجنون حکم هم دي حَتَّى عَتَقَ الْقَرِيبُ عَلَيْهِمَا تردې چې قریبی سړې په دې دواړو باندې آزادیږی عِنْدَ الْمِلْكِ چې کله ئې مالك شی لِأَنَّهُ تَعَلَّقَ بِهِ حَقُّ الْعَبْدِ فَشَابَهَ النَّفَقَةَ ځکه چې په دې آزادئ سره د بنده حق متعلق شوي دي

تشریح:- علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی .که ماشوم یا مجنون د یو قریبی محرم مالك شی .نودا هم آزادیږی .ځکه چې په دې آزادئ سره د بنده حق متعلق شو.او علت یعنی د ،،ذو رحم محرم،، مالك کیدل هم موجود شو.په دې وجه دا آزادیږی .نود نفقه مشابه شو.یعنی لکه ځنګه چې د قریب محرم محتاج نفقه د بچې اود مجنون په مال کي واجبیږی .دغه ډول که دوی د یو ،،ذو رحم محرم،، مالك شول.نودا به آزادیږی .والله اعلم بالصواب

## د الله لپاره غلام آزادول



وَمَنْ أَعْتَقَ عَبْدًا لِوَجْهِ اللَّهِ تَعَالَى اوکوم کس چې خپل غلام د الله تعالی د رضا( حاصلولو دپاره) آزاد کړو أَوْ لِلشَّيْطَانِ یا د شیطان لپاره أَوْ لِلصَّنَمِ یا د بت لپاره عَتَقَ نو غلام به ( په هرصورت کي ) آزاد وی لِوُجُودِ رُكْنِ الْإِعْتَاقِ مِنْ أَهْلِهِ فِي مَحَلِّهِ ځکه چې دآزادولو رکن ددې د اهل نه ددې په محل کي اوموندې شو وَوَصْفُ الْقُرْبَةِ فِي اللَّفْظِ الْأَوَّلِ زِيَادَةٌ او په لفظ اول کي قربت «لوجه الله» ذکر زیاتی دي فَلَا يَخْتَلُّ الْعِتْقُ بِعَدَمِهِ فِي اللَّفْظَيْنِ الْآخَرَيْنِ نو په روستنو دواړو لفظونوکي به ددې په نه کیدلو سره خلل نه واقع کیږی .

حل اللغة* ① صنم: بت ]

تشریح:- مسئله:کوم کس چې خپل غلام د الله لپاره آزاد کړلو.یا ئې د شیطان دپاره، یا ئې د بت لپاره آزاد کړلو.نو په هرصورت کي غلام آزادیږی .دلیل دادي.چه رکن د اعتاق یعنی لفظ اعتاق دخپل اهل نه او پخپل محل کي اوموندې شو.ځکه چې آزادونکې پخپله عاقل، بالغ، اود غلام مالك دي.اوغلام دده مملوك دي.او په ړومبی صورت کي د الله لپاره وئیل ضروری نه دی .بلکه دا یو زیاتی شی دي.نود شیطان یا د بت په صورت کي ددې نه کیدل څه مضر نه دی .خو په دې دواړه صورتونوکي به آزادونکې ګناهګار وی .اګرچه غلام به آزاد شی .ځکه چې د شیطان اود بت په صورت کي زیات نه زیات د قربت اود ثواب نفی کیږی .خود قرابت نفی د آزادئ نفی ته مستلزم نه ده.

## په غلام آزادولو باندې مجبوره کول

وَعِتْقُ الْمُكْرَهِ اوکوم کس چې په غلام آزادولو باندي مجبوره کړې شو وَالسَّكْرَانِ وَاقِعٌ .( دده آزادول) اود نشې نه د مست سړی آزادول واقع دی لِصُدُورِ الرُّكْنِ مِنَ الْأَهْلِ فِي الْمَحَلِّ ځکه چې دآزادولو رکن دخپل اهل نه په محل کي صادر شوی دی كَمَا فِي الطَّلَاقِ لکه ځنګه چې په طلاق کي دی وَقَدْ بَيَّنَّاهُ مِنْ قَبْلُ اودا موږ وړاندې بیان کړی دی .

حل اللغة* ① المکره: مجبوره کړې شوې ② السکران: نشته ]

تشریح:- مسئله داده.چه یوسړې د خپل غلام په آزادولو باندي مجبوره کړې شو.نو ده آزاد کړلو.یا په نشه کي مست سړی خپل غلام آزاد کړلو.نودا غلام آزادیږی .ځکه چې د آزادیدلو رکن هم ددې د اهل یعنی د عاقل بالغ نه صادر شوې دي.اومنسوب شوې هم محل اړخ ته دي.ځکه چې دا غلام مملوك دي.لکه ځنګه چې دا مسئله په ،،کتاب الطلاق،، کي په تفصیل سره بیان شوې ده.

## آزادئ ملکیت طرف ته منسوب کول

وَإِنْ أَضَافَ الْعِتْقَ إِلَى مِلْكٍ أَوْ شَرْطٍ او که یوکس آزادول مالك کیدو اړخ ته منسوب کړل صَحَّ نو صحیح دی كَمَا فِي الطَّلَاقِ لکه ځنګه چې په طلاق کي ( صحیح) دی أَمَّا الْإِضَافَةُ إِلَى الْمِلْكِ خوملك اړخ ته نسبت کولوکي

تشریح:- مسئله داده.که یوکس آزادی ملکیت اړخ ته منسوب کړی .مثلا اووائي .«إن ملكتك فانت حر» ،،که زه ستا مالك شوم نوته آزاد ئې،، یا ئې شرط اړخ ته نسبت اوکړی .مثلاً اووائی . «إن دخلت الدار فانت حر» ،،که ته کورته داخل شوې نو ته آزاد ئې،،نودا صحیح ده.لکه ځنګه چې طلاق ملك یا شرط اړخ ته منسوب کول صحیح دی .

فَفِيهِ خِلَافُ الشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللَّهُ د امام شافعی رحمه الله اختلاف دي وَقَدْ بَيَّنَّاهُ فِي كِتَابِ الطَّلَاقِ اودا موږ په کتاب الطلاق کي بیان کړی دی

تشریح:- خوملك اړخ ته په نسبت كولوكي د امام شافعي رحمه الله اختلاف دي.یعني ددوی په نیز آزادی نه واقع كيږي .او زموږ په نیز واقع كيږي .اودا مسئله په تفصیل سره په كتاب الطلاق كي تیره شوي ده.

وَأَمَّا التَّعْلِيقُ بِالشَّرْطِ او په شرط باندې معلق كول ځكه جائز دی فَلِأَنَّهُ إِسْقَاطٌ چې آزادول ساقطول دی فَيَجْرِي فِيهِ التَّعْلِيقُ نوپه دې كي تعليق د شرط جاري كيداې شي

تشریح:- او آزادی په شرط باندې معلق كول ځكه جائز دی .چه آزادول بالقصد اسقاط دي.اګرچه ضمناً د قوت اثبات دي.اوچونكه اسقاطات په شرط باندې معلق كول جائز دی .په دې وجه آزادول معلق كول هم درست دی.

بِخِلَافِ التَّمْلِيكَاتِ .په خلاف د تمليكاتو مَا عُرِفَ فِي مَوْضِعِهِ. چې په اصول فقه كي پخپله موقع باندې معلوم شوی دی

تشریح:- ددې په خلاف تمليكات دی .یعني په كوموصورتونوكي چې دمالك كيدلو معنی موندلې شی .دا په شرط باندې معلق كول صحیح نه دی .لكه څنګه چې اصول فقه كي پخپله موقع معلومه شوې ده.

## داراسلام ته د غلام راتلو او اسلام راوړل

وَإِذَا خَرَجَ عَبْدُ الْحَرْبِيِّ او هركله چې د يوحربي كافرغلام مسلمان شو إِلَيْنَا مُسْلِمًا او زموږ اړخ ته( دارالاسلام كي ) راغی عَتَقَ نودا آزاد شو لِقَوْلِهِ ﷺ فِي عَبِيدِ الطَّائِفِ ځكه چې نبی كريم ﷺ د طائف غلامانو ته حِينَ خَرَجُوا إِلَيْهِ مُسْلِمِينَ چې دوی مسلمانان شوی وو اود نبی كريم ﷺ په خدمت كي حاضرشوی وو هُمْ عُتَقَاءُ اللَّهِ تَعَالَى [1] اوفرمائیل.چه دا د الله تعالی آزاد كړې شوی دی.

تشریح:- كه د حربي كافر غلام مسلمان شی .او داراسلام ته راشی .نو آزادیږي .دليل دادي.چه كوم وخت د طائف غلامان(چه ددوی تعداد۲۳ وو) مسلمانان شو.اود نبی كريم ﷺ په خدمت كي حاضرشول.نو نبی كريم ﷺ اوفرمائیل.«هم عتقاء الله» يعني دا الله تعالی آزاد كړې دی.

وَلِأَنَّهُ أَحْرَزَ نَفْسَهُ او ځكه چې دې غلام خپل ځان په داسې حالت كي محفوظ كړو وَهُوَ مُسْلِمٌ چې دې مسلمان دې وَلَا اسْتِرْقَاقَ عَلَى الْمُسْلِمِ ابْتِدَاءً او په ابتداء كي په هيڅ مسلمان باندې غلامی نشی كيدې.

حل اللغة: ① استرقاق: غلام جوړول]

تشریح:- او دوهم دليل دادي.چه دې غلام د اسلام په حالت كي خپل ځان په داراسلام كي محفوظ كړې دي.او په ابتداء كي هيڅ يومسلمان غلام نشی جوړيدلې.په دې وجه به دې آزاد وی.

## د حاملې وينځې په آزادولوسره د حمل آزاديدل

وَإِنْ أَعْتَقَ حَامِلًا او كه يوكس خپل حامله وينځه آزاده كړله عَتَقَ حَمْلُهَا تَبَعًا لَهَا نود وينځې تابع به ددې حمل هم آزاد وی .إِذْ هُوَ مُتَّصِلٌ بِهَا ځكه چې دا دخپلې مورسره متصل دي

تشریح:- مسئله داده.كه مالك خپله حامله وينځه آزاده كړله.نوحمل به هم ددې حامله وينځې تابع وی .او آزاد به وی .ځكه چې دا حمل دوينځې جزء دي.لكه څنګه چې نور اجزاء دی .نولكه څنګه چې د وينځې په آزادولوسره ددې واړه اجزاء او اندامونه آزاديږي .دغه ډول ددې حمل هم آزاديږي.

(۱) من حديث علی رضی الله عنه أخرجه أبوداود فی الجهاد باب ۱۲۶رقم ۲۷۰۰ والترمذی فی مناقب علی (رضی الله عنه)



وَلَوْ أَعْتَقَ الْحَمْلَ خَاصَّةً اوكه ده صرف حمل آزاد كړو عَتَقَ نو صرف حمل به آزاديږي دُونَهَا وينځه نه لِأَنَّهُ لَا وَجْهَ إِلَى إِعْتَاقِهَا ځكه چې د وينځې آزدولو هيڅ وجه نشته مَقْصُودًا لِعَدَمِ الْإِضَافَةِ إِلَيْهَا ( نه قصداً) ځكه چې وينځې اړخ ته اضافت نشته وَلَا إِلَيْهِ تَبَعًا لِمَا فِيهِ مِنْ قَلْبِ الْمَوْضُوعِ او نه تبعاً ځكه چې په دې كي قلب موضوع ده

تشریح:- اوكه صرف حمل ئې آزاد كړې وی .نو صرف حمل به آزاد وی .ددې مور يعني وينځه به نه آزاديږي. دليل دا دې.چه د وينځې د آزادولو هيڅ صورت نشته.ځكه چې د وينځې د آزادولو دوې [دوه] صورتونه دی .يو دا چې د وينځې آزادول بالقصد وی . دوهم داچه د وينځې آزادول ددې د حمل تابع شی .خودا دواړه صورتونه ممكن نه دی .اول خو په دې وجه چې آزادول د وينځې اړخ ته نه دی منسوب شوی .او دوهم صورت ځكه ممكن نه دې.چه په دې كي قلب د موضوع لازميږي .ځكه حمل چې تابع دې.دا به متبوع شی .او ددې مور چې متبوع ده.دا به تابع شی.

ثُمَّ إِعْتَاقُ الْحَمْلِ صَحِيحٌ بيا د حمل آزادول،صحيح دی وَلَا يَصِحُّ بَيْعُهُ وَهِبَتُهُ او( روسته) ددې خرڅول يا هبه كول به صحيح نه وی لِأَنَّ التَّسْلِيمَ نَفْسَهُ شَرْطٌ فِي الْهِبَةِ ځكه چې په هبه كي پخپله ددې ذات سپارل واجبيږي وَالْقُدْرَةُ عَلَيْهِ فِي الْبَيْعِ او په بيع كي د سپارلو قدرت شرط دې وَلَمْ يُوجَدْ ذَلِكَ اودا خبره اونه موندې شوه بِالْإِضَافَةِ إِلَى الْجَنِينِ د خيتې بچی اړخ ته د نسبت كاوه په وجه وَشَيْءٌ مِنْ ذَلِكَ لَيْسَ بِشَرْطٍ فِي الْإِعْتَاقِ او په آزادولوكي په دې كي هيڅ شی شرط نه دی فَافْتَرَقَا نو دواړه جلا شو.

تشریح:- ښكاره دې وی .چه د حمل آزادول درست دی .خو ددې خرڅول، يا هبه كول درست نه دی .دليل دادې.چه په هبه كي د شئ موهوب سپارل واجب وی .او په بيع كي په سپارلو باندې قادر كيدل شرط دی .او دلته كي جنين (د خيتې بچی ) اړخ ته د نسبت كاوه په وجه دې دواړو خبروكي يوه خبره هم ممكن نه ده.ځكه چې نه خو د خيتې د بچی سپارل ممكن دی .او نه ددې په سپارلو باندې قدرت حاصل دې.په دې وجه نه جنين خرڅولې شی .او نه ئې هبه كولې شی .او چونكه په آزادولوكي په دې كي يوه خبره هم شرط نه ده.په دې وجه جنين يعنی د حمل آزادول درست دی .نو په آزادولو او په بيع او هبه كي توپير ښكاره شو.

## د مال په يومقدار باندې د حمل آزادول

وَلَوْ أَعْتَقَ الْحَمْلَ عَلَى مَالٍ اوكه د( وينځې )حمل ئې په څه قدرې مال باندې آزادكړو صَحَّ نو( آزادول) صحيح دی . وَلَا يَجِبُ الْمَالُ اومال به واجب نه وی إِذْ لَا وَجْهَ إِلَى إِلْزَامِ الْمَالِ عَلَى الْجَنِينِ ځكه چې د خيتې په بچی باندې د مال لازمولو هيڅ صورت نشته لِعَدَمِ الْوِلَايَةِ عَلَيْهِ ځكه چې په ده باندې د هيڅ چا ولايت نشته وَلَا إِلَى إِلْزَامِهِ الْأُمَّ او دده په مور باندې هم د مال لازمولو هيڅ وجه نشته لِأَنَّهُ فِي حَقِّ الْعِتْقِ نَفْسٌ عَلَى حِدَةٍ ځكه چې د آزادئ په حق كي ( بچې) يو جلا نفس ( بدن) دې وَاشْتِرَاطُ بَدَلِ الْعِتْقِ عَلَى غَيْرِ الْمُعْتَقِ لَا يَجُوزُ اود آزادئ د معتق(كوم چې آزاد كړې شو) نه علاوه باندې لازمول جائز نه دی عَلَى مَا مَرَّ فِي الْخُلْعِ لكه څنګه چې په خلع كي بيان شو وَإِنَّمَا يُعْرَفُ قِيَامُ الْحَمْلِ وَقْتَ الْعِتْقِ اود آزادولو په وخت دحمل موجود كيدل هغه وخت معلوميږي. إِذَا جَاءَتْ بِهِ لِأَقَلَّ مِنْ سِتَّةِ أَشْهُرٍ مِنْهُ چې د آزادولو دوخت نه د شپږ مياشتو نه په كم كي پيدا شوی وی لِأَنَّهُ أَدْنَى مُدَّةِ الْحَمْلِ ځكه چې دحمل كمه موده هم داده.

تشریح:- صورت د مسئلې دادې.كه حمل د مال په يو خاص مقدار باندې آزاد كړی .نودا آزادول صحيح دی. خو مال به واجب نه وی .ځكه چې د مال واجبولو دوې [دوه] صورتونه دی .يا خوبه پخپله په دې جنين يعنی د خيتې په بچی باندې مال واجبولې شی .او يا به ددې بچی په مور باندې واجبيږي .خو دواړه صورتونه باطل دی .اول خوپه دې وجه باطل دې.چه په جنين باندې هيڅ چاته ولايت حاصل نه دې.نو په ده باندې دمال لازم كاوه هيڅ صورت نشته.او دوهم صورت په دې وجه باطل دې.چه جنين د آزادئ په حق كي جلا يو

نفس دي.اود ازادئ بدله په غيرمعتق باندې واجبول درست نه دی .لکه څنګه چې په خلع کې بيان شوی دی .علامه بدرالدين عينی رحمه الله فرمائی .چه دا حواله غيرمفيد ده.ځکه چې شارحينو ته دا د خلع په بيان کې نه ده ملاوشوې.البته دا احتمال شته.چه مصنف رحمه الله د ،،كفاية المنتهی ،، په باب الخلع کې ذکر کړی وی .او دلته کې ئې هغې اړخ ته اشاره کړې وی .ځکه چې ،،كفاية المنتهی ،، ددې کتاب نه د وړاندې تصنيف دې.دا خبره دې ښکاره وی .چه د آزادولو په وخت حمل موجوديدل به هغه وخت معلوميږی .چه د آزاديدلو د وخت نه د شپږمياشتو نه په کمه موده کې پيدا شوې وی .ځکه چې دحمل ادنی موده هم دا ده.

**د وينځې نه د مولا د اولاد حکم**

قَالَ قدوری رحمه الله فرمائی **وَوَلَدُ الْأَمَةِ مِنْ مَوْلَاهَا حُرٌّ** چې د وينځې کوم اولاد ددې د مولا نه پيداشی هغه آزاد دې **لِأَنَّهُ مَخْلُوقٌ مِنْ مَائِهِ** ځکه چې د مولا د نطفې نه (پيدا) دې **فَيَعْتِقُ عَلَيْهِ** نوهم په ده به آزاد وی **هٰذَا هُوَ الْأَصْلُ** دا اصل دی **وَلَا مُعَارِضَ لَهُ فِيهِ** اود بچی په اړه کې هيڅ معارض نشته **لِأَنَّ وَلَدَ الْأَمَةِ لِمَوْلَاهَا** ځکه چې د وينځې د وينځې د مولا دې.

**تشريح:-** مسئله داده.چه د وينځې هغه اولاد کوم چې ددې د مالك نه پيدا شوې وی .هغه به آزاد وی . دليل دا دې.چه دا بچی د مولا د نطفې نه پيدا شوې دې.او کوم بچې چې د مولا د نطفې نه پيدا شی .هغه آزاد وی . ځکه به دا بچې آزاد وی .او هم دا اصل دې.چه بچې د صاحب ماء(واطی ) وی .او په دې بچی کې څه معارض شی هم نشته.ځکه چې د وينځې اوبه (نطفه) ددې د مولا ملك وی .نو دواړه اوبهٔ د مولا شو.يعنی د وينځې نطفه، او دده خپله نطفه دواړه دده دی .

**د وينځې د بچی حکم**

**وَوَلَدُهَا مِنْ زَوْجِهَا** اوکه د وينځې بچې ددې د خاوند نه پيدا شوې وی دې **مَمْلُوكٌ لِسَيِّدِهَا** نودا به د وينځې د مالك مملوك وی **لِتَرَجُّحِ جَانِبِ الْأُمِّ** ځکه چې د مور اړخ راجح **بِاعْتِبَارِ الْحَضَانَةِ** د پرورش په اعتبار سره **أَوْ لِاسْتِهْلَاكِ مَائِهِ بِمَائِهَا** ياځکه چې د خاوند نطفه ددې وينځې په نطفه کې ملاويدلو سره هلاك شوه **وَالْمُنَافَاةُ مُتَحَقِّقَةٌ** او منافات ثابت دي

**حل اللغة:** ① **الحضانة:** پرورش، تربيت ② **استهلاك:** هلاکول ③ **مغرور:** دهوکه ورکړې شوې]

**تشريح:-** مسئله داده.که د وينځې بچې ددې د خاوند نه پيدا شوې وی .نودا به د وينځې د مالك مملوك وی .دليل دادې.چه دا تعارض موجود دې.ځکه چې منافات ثابت دې.او منافات ځکه ثابت دې.چه بچې د موراود پلار د دواړو د نطفې نه پيدا شوې دې.نو په دې صورت کې که د مور د اړخ اعتبار اوکړې شی .نو بچې به د وينځې د مولا مملوك وی .او که د پلار د اړخ اعتبار اوکړې شی .نو بچې به د وينځې يعنی ددې د مور د مولا مملوك نه وی .نوچونکه په دواړه صورتونوکې منافات متحقق شوې دې.په دې وجه به د ترجيح لاره اختيارولې شی .او په څو وجوهو سره د مور اړخ ته ترجيح حاصل ده.اول خوځکه .چې د پرورش حق مور ته حاصل دې. دوهم داچه د خاوند نطفه د وينځې يعنی د ښځې په نطفه کې ملاؤ شوې ده.او هلاکه شوې ده.ځکه چې د ښځې نطفه پخپل ځائې برقرار ده.اود خاوند نطفه پخپل ځائې برقراره نه ده.بلکه منتقل شوې ده.اود ښځې په رحم کې راغلې ده.دريم داچه بچې ترکوم وخته پورې د مور په نس کې د جنين په صورت کې دې.نودا حساً او شرعاً د ښځې د يو اندام پشان دې.لکه څنګه چې ددې لاس او خپه اندامونه دی .حساً په دې وجه اندام دې.چه جنين د خپلې مور په ساه اخستلو سره ساه اخلی .او ددې په منتقل کيدلوسره منتقل کيږی .تردې چې د ولادت په وخت په قينچئ سره کټ کولې شی .اودا دخپلې مور نه جلا کولې شی .اوشرعاً ځکه د اندام پشان دې.چه دوينځې په آزادولو سره جنين يعنی ددې د خيټې بچې هم آزاديږی .څلورم داچه حقيقتاً اوحکماً دواړه شان د مور د نطفې نه پيدا کيږی .اود پلار د نطفې نه صرف



حکماً پيدا شوې دې.نود ترجيح په دې وجوه سره د مور اړخ ته ترجيح ورکړې شوې ده.او مور اړخ ته د ترجيح ور کاوه نتيجه به دا وی .چه مور د کوم کس مملوکه وی .ددې بچې به هم دهغه کس مملوکه وی .

**وَالزَّوْجُ قَدْ رَضِيَ بِهِ** او خاوند په دې خبره باندې راضی شو **بِخِلَافِ وَلَدِ الْمَغْرُورِ** په خلاف دهغه کس د بچی چې ده ته دهوکه ورکړې شوی وی **لِأَنَّ الْوَالِدَ مَا رَضِيَ بِهِ** ځکه چې دې په دې خبره باندې راضی نه وو.

**تشريح:-** دا عبارت د يوسوال ځواب دې.سوال دادې.چه په دې صورت کې خاوند ته ضرر رسيږی .چه دده بچې د بل چا مملوك وی .ځواب دادې.چه خاوند د خپل بچی په مملوك جوړولو باندې پخپله راضی شوې دې.ځکه چې دې د وينځې سره دنکاح کاوه اقدام کړې دې.حالانکه ده ته دا علم وو.چه ددې وينځې نه چې کوم بچې پيداکيږی .هغه به ددې دمولا مملوك وی .په خلاف د هغه کس چې ده ته دهوکه ورکړې شوې وی .چه دا ښځه آزاده ده.حالانکه هغه وينځه وه.نو ددې بچې به مملوك نه وی .بلکه آزاد به وی .خو ددې قيمت ورکول به ضروری وی . ځکه چې دې په دې خبره باندې راضی نه وو.چه زما اولاد دچا مملوك شی .

صورت دادې.چه يوې ښځې خالد ته اووئيل.زه آزاده يم.ما سره نکاح اوکړه.نو خالد په دې خيال دې سره نکاح اوکړه.او اولاد پيدا شو.حالانکه دا ښځه د حامد وينځه وه.ده دا ددې د اولاد سره اونيوله.نو اولا به د حامد مملوك نه وی .ځکه چې خالد په دې خبره راضی نه وو.چه د غير وينځې سره نکاح اوکړې .چه کوم اولاد پيدا شی .نوهغه هم مملوك شی .خو خالد به حامد ته ددې بچی قيمت ورکوی .چه د دواړو د رعايت لحاظ اوساتلې شی .

**د غلام د ازادې ښځې د بچی حکم**

**وَوَلَدُ الْحُرَّةِ حُرٌّ عَلَى كُلِّ حَالٍ** اود آزادې ښځې بچې بهرحال آزاد دې **لِأَنَّ جَانِبَهَا رَاجِحٌ** ځکه چې دښځې اړخ راجح دې **فَيَتْبَعُهَا فِي وَصْفِ الْحُرِّيَّةِ** نو بچې به هم دآزادئ په صفت کې ددې تابع وی **كَمَا يَتْبَعُهَا فِي الْمَمْلُوكِيَّةِ وَالْمَرْقُوقِيَّةِ وَالتَّدْبِيرِ وَأُمُومِيَّةِ الْوَلَدِ وَالْكِتَابَةِ** لکه څنګه چې د مملوکيت، مرقوقيت، مدبره، ام ولد، او مکاتبه کيدلو صفاتوکې دی **وَاللّٰهُ تَعَالَى أَعْلَمُ**

**حل اللغة:** ① **المرقوقية:** غلامی ② **تدبير:** مدبرجوړول ③ **امومية الولد:** ام ولد جوړول]

**تشريح:-** مسئله داده.چه د آزادې ښځې بچې په هرحال کې آزاد وی .که ددې خاوند آزاد وی .اوکه غلام وی .دليل دادې.چه وړاندې تير شوی دی .چه د ښځې اړخ ته ترجيح ورکولې شی .په دې وجه به ددې بچې هم په آزاديدلوکې ددې تابع وی .يعنی د مور د آزادکيدلو په وجه به ددې بچې هم آزاد وی .لکه څنګه چې دمور په مملوك او مرقوق کيدلو سره بچې هم مملوك او رقيق وی .دغه ډول که مولا د خپلې ام ولد يو سړی سره نکاح اوکړله.يا ئې د خپلې مکاتبې نکاح اوکړله.نو بچې به د خپلې مور په حکم کې وی .په (عينی شرح هدايه) کې ليکلی دی .چه علامه کاکی رحمه الله فرمائی . چې مملوکيت او مرقوقيت دواړه ئې ځکه ذکر کړل.چه په دې دواړوکې تغاير دې.ځکه چې په مدبر او ام ولدکې ملك کامل وی .او رقيت ناقص وی .او په مکاتب کې ملك ناقص وی .او رقيت کامل وی .والله اعلم بالصواب،

## باب العبد يعتق بعضه

ژباړه:- (دا) باب د داسې غلامانو (په بيان کې ) دې.چه ددوی بعض برخه ازاد شوې وی .

**تشريح:-** هرکله چې مصنف رحمه الله د پوره غلام آزادولو د بيان نه فارغ شو.نو اوس په دې باب کې دغلام بعض برخه آزادولو صورتونه بيانوی .اوچونکه د پوره غلام آزادول متفق عليه وو.او ددې بعض برخه آزادول مختلف فيه دی .په دې وجه ئې د پوره غلام آزادولو احکام مخکې بيان کړل.اود غلام د بعض برخې آزادولو احکام ئې روسته ذکر کړل.

## د غلام بعض برخه أزادول

وَإِذَاأَعْتَقَ الْمَوْلَى بَعْضَ عَبْدِهِ اوكه مولا د خپل غلام څه برخه آزاده كړله عَتَقَ ذٰلِكَ الْقَدْرُ وَيَسْعٰى فِي بَقِيَّةِ قِيْمَتِهِ لِمَوْلَاهُ عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ نود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به هم دومره برخه آزاده وى .اود پاته قيمت به مزدورى كوى .او خپل مولا ته به ئې وركوى وَقَالَا: يَعْتِقُ كُلُّهُ او صاحبينو رحمهما الله فرمائيلى دى .چه پوره غلام به آزادولې شى وَأَصْلُهُ او ددې اختلاف بنا (بنياد) دادې أَنَّ الْإِعْتَاقَ يَتَجَزَّأُ عِنْدَهُ چې دامام صاحب رحمه الله په نيز د اعتاق ټكړې كيداې شى فَيَقْتَصِرُ عَلَى مَا أَعْتَقَ نوځومره قدرې ئې چې آزاد كړو.هم په هغې به منحصر كيږى

حل اللغة: ① يسعى كوښښ كوى ② يتجزأ تقسيميږى ③ الرق خالصه غلامى ④ القنة وينځه ]

تشريح:- صورت د مسئلې دادې.كه مولا د خپل غلام څه برخه آزاده كړله.نود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز هم دومره قدرې برخه آزاديږى .اود پاته برخې قيمت لپاره به مزدورى كوى .اومولا ته به وركوى . او صاحبين رحمهما الله فرمائى .چه پوره غلام آزاديږى .اود اختلاف بنيادى وجه داده.چه د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز باندې اعتاق ټكړې كيدلې شى .نو مولا چې ځومره قدرې برخه آزاده كړله.هم دومره قدرې به آزديږى .

وَعِنْدَهُمَا لَا يَتَجَزَّأُ اود صاحبينو رحمهما الله په نيز نه ټكړې كيږى وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ اوهم دا د امام شافعى رحمه الله قول دې ، فَإِضَافَتُهُ إِلَى الْبَعْضِ كَإِضَافَتِهِ إِلَى الْكُلِّ فَلِهٰذَا يَعْتِقُ كُلُّهُ نو پوره غلام به آزاد وى

تشريح:- اود صاحبينو رحمهما الله په نيز باندې اعتاق نه ټكړې كيږى .اوهم دا د امام شافعى رحمه الله قول دې.خو امام شافعى رحمه الله د صاحبينو رحمهما الله سره په دې صورت كي دې.چه كله مالك يو وى .كه مالكان دوې [دوه] وى .نو په دوى كي چې كوم كس خپله برخه آزاره كړله.دا مفلس دې.نو په دې صورت كي د امام شافعى رحمه الله په نيز د ساكت ملك په سابقه حالت باندې پاته پاتې وى .تردې چې دده لپاره دخپلې برخې خرڅول،او هبه كول درست دى .بهرحال د صاحبينو رحمهما الله په نيز اعتاق نه ټكړې كيږى .او د كوم څيزچه ټكړې نه كيږى .دا يوې برخې اوجزء اړخ ته منسوب كول داسې دى .لكه كل اړخ ته منسوب كول .نو اعتاق د غلام يوې برخې اړخ ته منسوب كول، كل اړخ ته منسوب كول شو.په دې وجه دې صورت كي پوره غلام آزاديږى .

د امام صاحب اود صاحبينو رحمهم الله په مينځ كي د اختلاف حاصل دادې.چه نيم غلام آزاد كړې شو.نو رقيت به د پوره غلام نه زائل كيږى .او كه نه؟ نود امام صاحب رحمه الله په نيز به رقيت نه زائل كيږى .بلكه پوره غلام به رقيق وى .البته د آزادئ په مقدار سره به د غلام نه د مولا ملك زائل شى .اود صاحبينو رحمهما الله په نيز د پوره غلام نه رقيت زائل كيږى .

لَهُمَا د صاحبينو او امام شافعى رحمهم الله دليل دادې أَنَّ الْإِعْتَاقَ إِثْبَاتُ الْعِتْقِ چې اعتاق ( معنى ) عتق ثابتول دى وَهُوَ قُوَّةٌ حُكْمِيَّةٌ اودا قوت حكميه دې وَإِثْبَاتُهَا بِإِزَالَةِ ضِدِّهَا او ددې قوت ثابتول به ددې په ضدلرې كاوه سره كيږى وَهُوَ الرِّقُّ او ددې ضد رقيت دې الَّذِي هُوَ ضَعْفٌ حُكْمِيٌّ .چه داحكمى كمزورى ده وَهُمَا لَا يَتَجَزَّآنِ او ددې دواړو ټكړې نشى كيداې فَصَارَ .نو( دا) داسې شوه كَالطَّلَاقِ وَالْعَفْوِ عَنِ الْقِصَاصِ وَالْإِسْتِيْلَادِ لكه طلاق وركول،اود قصاص نه معاف كول، او ام ولد جوړول

تشريح:- د صاحبينو اود امام شافعى رحمهم الله دليل دادې. چې د اعتاق معنى عتق ثابتول دى .او عتق د قوت حكميه نوم دې.يعنى د شريعت په حكم كي ده ته د تصرفاتو قوت حاصليږى .حاصل داچه اعتاق د قوت حكميه ثابتولونوم دې.او ددې قوت ثابتول داسې كيږى .چه كوم شى ددې ضد دې.هغه لرې كړې شى .او ددې ضد رقيت دې.يعنى مملوكيت،چه دا حكمى كمزورى ده.او ددې دواړو څيزونو يعنى د قوت حكمى (عتق) اود ضعف حكمى (رقيت) ټكړې نشى كيدلې.په دې وجه د اعتاق ټكړې هم نشى كيدلې.نو اعتاق په



عدم تجزى كي ميده شوې دې.لكه طلاق وركول، قصاص معاف كول، ام ولد جوړول، مثلاً دا نشى كيدلې. چې نيمې ښځې ته طلاق وركړې شى .او نيمې ته ورنكړې شى .او نيم قصاص معاف كړى .او نيم نه.دغه ډول دا نشى كيدلې. چې نيمه وينځه ام ولد جوړه كړې شى .او نيمه نه.نو لكه څنګه چې په دې كي بالاتفاق يو هم نشى ټكړې كيدلې.دغه ډول د اعتاق هم ټكړې نشى كيدلې.

وَلِأَبِي حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ ،اود امام صاحب رحمه الله دليل دادې أَنَّ الْإِعْتَاقَ إِثْبَاتُ الْعِتْقِ بِإِزَالَةِ الْمِلْكِ، أَوْهُوَ إِزَالَةُ الْمِلْكِ چې اعتاق (معنى ) عتق ثابتول،ملك لرې كول دى .يا اعتاق ملك لرې كول دى لِأَنَّ الْمِلْكَ حَقُّهُ خكه چې ملك دآزادونكى حق دې. وَالرِّقُّ حَقُّ الشَّرْعِ أَوْحَقُّ الْعَامَّةِ او رقيت حق شرعى يا د بندګانو حق دې. وَحُكْمُ التَّصَرُّفِ مَا يَدْخُلُ تَحْتَ وِلَايَةِ الْمُتَصَرِّفِ اود تصرف حكم دومره قدرې وى .ځومره قدرې چې دتصرف كونكى په ولايت كي وى وَهُوَ إِزَالَةُ حَقِّهِ لَا حَقِّ غَيْرِهِ اودا خپل حق لرې كول دى .نه دا چې دخپل غير حق وَالْأَصْلُ أَنَّ التَّصَرُّفَ يَقْتَصِرُ او اصل خبره داده.چه تصرف داسې خائې پورې كيږى عَلٰى مَوْضِعِ الْإِضَافَةِ چې كوم خائې پورې ددې نسبت اوكړې شى وَالتَّعَدِّيْ إِلٰى مَا وَرَاءَهُ ضَرُوْرَةَ عَدَمِ التَّجَزِّيْ او ددې خائې نه علاوه اړخ ته تجاوز كول د عدم تجزى ( كيدلو) په وجه كيږى وَالْمِلْكُ مُتَجَزِّئٌ .او ملك متجزى دې كَمَا فِي الْبَيْعِ وَالْهِبَةِ لكه څنګه چې په بيع او هبه كي دى فَيَبْقٰى عَلَى الْأَصْلِ نود اعتاق تصرف به هم خپل اصل پورې پاتې وى

تشريح:- اود امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې.چه د اعتاق معنى د ملك لرې كاوه په ذريعه عتق ثابتول دى .يا اعتاق ددې ملك لرې كاوه نوم دې.څكه چې ملك د آزادونكى حق دې.او رقيت د شريعت حق دې.څكه چې كافركله د ،،عبدالله،، يعنى د الله تعالى د غلام كيدلو نه انكار اوكړو.نو الله تعالى ده ته په دې طريقه بدله وركړله.چه د خپل بنده غلام ئې جوړ كړو.رقيت د عامو خلګو حق دې.څكه چې مجاهدين څنګه د رقيق نه علاوه سامان تقسيموى .دغه ډول به رقيق هم تقسيموى .اود تصرف حكم هم دومره وى .ځومره چې د تصرف كونكى په قابو او قدرت كي وى .او هغه دادې.چه خپل حق لرې كړى .د غيرحق لرې نه كى (نكړې).يعنى مولا صرف ملك لرې كولې شى .رقيت نشى لرې كولې.او ملك تجزى (ټكړې) دې.نو اعتاق به هم متجزى وى .او خبره په اصل كي داده.چه تصرف دومره حده پورې وى .ځومره پورې چې ددې نسبت كړې شوې وى .او ددې حد نه علاوه اړخ ته تجاوز كول په دې اړتيا سره كيدلې شى .چه ددې تجزى اونكړې شى .او دلته كي چې كوم ملك د مولا حق دې.ددې تجزى كيدلې شى .لكه څنګه چې په بيع او هبه كي ښكاره ده.يعنى مثلاً نيم غلام ئې خرڅ كړلو.يا ئې هبه كړلو.نو بالاتفاق جائز دى .نود اعتاق تصرف به هم خپل اصل باندې پاته پاتې وى .يعنى كه نيم ئې آزاد كړو.نوجائز دې.هم نيم به آزاد وى .

وَتَجِبُ السِّعَايَةُ او مزدورى كول واجب دى . لِاحْتِبَاسِ مَالِيَّةِ الْبَعْضِ عِنْدَ الْعَبْدِ څكه چې د پاته برخې ماليت ددې غلام سره ( بند ) پاتې دې ، وَالْمُسْتَسْعٰى بِمَنْزِلَةِ الْمُكَاتَبِ عِنْدَهُ او ( مستسعى ( په كوم غلام چې مزدورى كول او اداكول واجب وى ) د امام صاحب رحمه الله په نيز په منزله دمكاتب دې

تشريح:- او پاتې شو په غلام باندې د پاته برخې لپاره مزدورى واجب كيدل، نودا څكه دى .چه د پاته ټكړې ماليت دې غلام سره بند دې.نو دده څخه به وصولولې شى .او په كوم غلام چې مزدورى كول، او ددې ادا كاوه واجب دى .دا د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز د مكاتب پشان دى.

لِأَنَّ الْإِضَافَةَ إِلَى الْبَعْضِ تُوْجِبُ ثُبُوْتَ الْمَالِكِيَّةِ فِيْ كُلِّهِ څكه چې د آزادولو نسبت د غلام (كوم ) يوجزء اړخ ته كول ( دغلام دپاره) په پوره غلام كي ملكيت ثابتول واجبوى وَبَقَاءُ الْمِلْكِ فِيْ بَعْضِهِ او په يوه ټكړه كي ( د مولا)

ملك پاته ساتل يَمْنَعُهُ ددي لپاره مانع دي فَعَمِلْنَا بِالدَّلِيلَيْنِ نو موږ په دواړو دليلونو باندي عمل اوكړو بِإِنْزَالِهِ مُكَاتَبًا چې دا غلام مو مكاتب اوګرځولو إِذْ هُوَ مَالِكٌ يَدًا ددي لپاره چې دي دخپلي مزدورئ مالك دي لَا رَقَبَةً.اود خپل ذات مالك نه دي

تشريح:- ځكه چې كله د اعتاق نسبت د غلام يوجزء اړخ ته اوشو.نو په دې اعتبار سره دا لازم شو.چه په پوره غلام كي ده ته ملكيت حاصل وي .يعني چې غلام د خپل پوره ذات مالك شي .ځكه چې عتق نه متجزى كيږي .اود مولا ملك په يوه برخه كي پاته پاتې كيدل د رقيت په اعتبار سره ددې خبرې تقاضاكوي .چه دې د پوره ذات مالك نه وي .ځكه چې رقيت هم نه متجزى كيږي .حاصل داچه دلته كي دوې [دوه] خبرې جمع شوې.يودا چې غلام د خپل پوره ذات مالك وي . دوهم داچه د غلام په پوره ذات كي د مولا ملك پاته پاتې وي .او چونكه په دواړه دليلونو باندې عمل كول ممكن دي .په دې وجه موږ په دواړه دليلونو باندې عمل اوكړو.اودا غلام مو مكاتب اوګرځولو.ځكه چې مكاتب يداً مالك وي .او رقبةً مملوك وي .نو هم دغه ډول به دې هم د خپلي ګټي مالك وي .اود خپل ذات مالك به نه وي .

وَالسِّعَايَةُ كَبَدَلِ الْكِتَابَةِ او سعايه ( مزدوري ) د بدل كتابت پشان دي فَلَهُ أَنْ يَسْتَسْعِيَهُ نو مولا ته دا اختيار شته.چه په ده باندې مزدوري اوكړي .( او پاته قيمت وصول كړي ) وَلَهُ خِيَارُ أَنْ يُعْتِقَهُ اودا اختيار هم شته.چه دې آزاد كړي لِأَنَّ الْمُكَاتَبَ قَابِلٌ لِلْإِعْتَاقِ ځكه چې مكاتب د آزادولو قابل وي غَيْرَ أَنَّهُ إِذَا عَجَزَ خو كه كله ( دا غلام) عاجز شو لَا يُرَدُّ إِلَى الرِّقِّ نو رقيت اړخ ته به نشي واپس كولې. لِأَنَّهُ إِسْقَاطٌ لَا إِلَى أَحَدٍ ځكه چې ( دده نه مكاتبت ساقطول،، لا الى احد،،دى فَلَا يَقْبَلُ الْفَسْخَ نو فسخ به نه قبلوى

تشريح:- او هركله چې مستسعى (د خپلي پاته برخې لپاره مزدوري كونكې غلام) د مكاتب پشان شو.نو دده مزدوري به د بدل كتابت پشان وي .نو مولا ته دا اختيار پاتې شو.چه په ده باندې مزدوري كوي .اود پاته برخې قيمت وصول كړي .اودا اختيار هم شته.كه غواړي نو دا آزاد كړي .ځكه چې مكاتب هم ددې قابل وي .چه مولا دې آزاد كړي .

؟ خودلته كي يو سوال دې.هغه داچه مستسعى كه د مكاتب په مرتبه كي دې.نو لكه ځنګه چې مكاتب د بدل كتابت نه د عاجزه كيدلو په صورت كي رقيق (غلام) كيږي .دغه ډول كه مستسعى د مزدورئ نه عاجزه شي .نودا هم رقيق كول پكار دى .حالانكه داسې نه ده.بلكه د كوم غلام چې يو جزء آزاد شي .او په ده مزدوري واجب شي .كه دې د مزدورئ نه عاجزه شي .نو ده ته رقيق نشي ونيلې؟ ددې خواب دا دې.چه په دې دواړو كي دومره توپير دې.چه مكاتب كه د مال ادا كاوه نه عاجزه شي .نو دې رقيق كولې شي .اودا غلام كه د مزدورئ نه عاجزه شي .نو نشي رقيق كيدلې.وجه د توپير داده.چه غلام آزادول،، اسقاط لا الى احد،، دې.يعنى دده نه ملكيت ساقطول،، لا الى احد،، دى .او په اسقاط ،،لا الى احد،، كي د معاوضه معنى نشته.ځكه چې معاوضه د دوې [دوه] كسانو په مينځ كي متحقق كيږي .او دلته كي صرف يو كس دې.يعنى آزادونكې.نو هركله چې په دې صورت كي د معاوضه معنى نشته.نودا د فسخ قابل هم نه دې.

بِخلاف الكتابة المقصودة په خلاف د كتابت مقصوده لِأَنَّهُ عَقْدٌ ځكه چې دا يوعقد دي يُقَالُ ددې اقاله هم كيداې شى وَيُفْسَخُ او فسخ هم كيداې شى

تشريح:- ددې په خلاف كتابت دې.چه بالاراده غلام سره يوه معامله اوكړي .نودا به ،،اسقاط عن المولى الى المكاتب،، وى .په دې طريقه چې مولا خپل مكاتب ته د بدل كتابت په حاصلولو قدرت وركړې دې.نو په كتابت كي د معاوضه معنى موجود ده.او هركله چې د معاوضه معنى موجود ده.نود كتابت اقاله هم شى .او فسخ هم كيدلې شى .



وَلَيْسَ فِي الطَّلَاقِ وَالْعَفْوِ عَنِ الْقِصَاصِ حَالَةٌ مُتَوَسِّطَةٌ او په طلاق او عفوعن القصاص كي ( بل) څه درمياني حالت نشته فَأَثْبَتْنَاهُ فِي الْكُلِّ نو موږ طلاق يا عفو په كل كي ثابت كړو تَرْجِيحًا لِلْمُحَرِّمِ محرم ته (په مبيح) باندي ترجيح كاوه سره،

تشريح:- په دې عبارت سره د صاحبينو اود امام شافعي رحمه الله د قياس ،،فصار كالطلاق والعفو عن القصاص والاستيلاد،، خواب وركوى .فرمائى .چه اعتاق په طلاق اوپه عفو عن القصاص باندې قياس كول صحيح نه دى .ځكه چې د طلاق اود نكاح په مينځ كي ، يا د قصاص اود عفو په مينځ كي هيڅ منځنى حالت نشته.لكه ځنګه چې د آزادئ اود مملوكيت په مينځ كي د كتابت حالت وو.چه كتابت د خپل ذات په اعتبار سره مملوكيت دې.اود خپلي مزدورئ اود تصرفاتو په اعتبار سره آزادى ده.نوهركله چې د نكاح اود طلاق په مينځ كي داسې حالت نشته.نوچا چې نيمې ښځې ته طلاق وركړو.نودا د نيم طلاق په وجه حرام شوه.او نوره نيمه برخه د نكاح په وجه حلال ده.او په اصول فقه كي دا قاعده ذكر ده.چه كله حلال اوحرام جمع شي .نو حرام ته به په حلال باندې ترجيح وركولې شي .او پوره ښځه به حرام ګرځولې شي .چه په احتياط باندې عمل اوشي .دغه ډول په عفو كي هم ده.چه كله نيم قصاص معاف شو.نود معاف كاوه په وجه دا نصف قصاص حرام شو.او نور نيم حلال دې.نوحرام ته به په حلال باندې ترجيح وركولې شي .او ونيلې به شي .چه پوره قصاص معاف شوې دې.او اوس قصاص اخستل حرام دى .

وَالِاسْتِيلَادُ مُتَجَزٍّ عِنْدَهُ او ام ولد جوړول د امام صاحب رحمه الله په نيز تكړې كيږي حَتَّى لَوِ اسْتَوْلَدَ نَصِيبَهُ مِنْ مُدَبَّرَةٍ تردې كه يوې مدبره وينځې خپله برخه ام ولد جوړه كړله يَقْتَصِرُ عَلَيْهِ نوهم دې برخې پورې به ( متعلق) وى وَفِي الْقِنَّةِ او صرف په مملوكه وينځه كي ( داسې اوشو نو) لَمَّا ضَمِنَ نَصِيبَ صَاحِبِهِ چې كله ده دخپلي شريك برخې تاوان په دې وجه وركړو. بِالْإِفْسَادِ چې دده ملك ئې فاسد كړې دې مَلَكَهُ بِالضَّمَانِ كَامِلًا نو په تاوان وركاوه سره د پوره وينځې مالك شو فَكَمُلَ الِاسْتِيلَادُ نواستيلاد پوره شو.

تشريح:- پاتى شو په استيلاد باندې قياس كول، نودا هم صحيح نه دى .ځكه چې استيلاد يعنى ام ولد جوړول، د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز متجزى كيږي .لكه ځنګه چې اعتاق متجزى كيږي .تردې كه يو كس په مدبره وينځه كي خپله برخه ام ولد جوړه كړله.نودا به هم دې برخې پورې وى .او كه صرف په مملوكه وينځه كي داسې اوشو.نو كله چې ئې خپل شريك ته په دې وجه تاوان وركړلو.چه دده ملك فاسد شوې دې.نو په تاوان وركولوسره به پوره وينځه دده ملك شي .او استيلاد به هم پوره شي .

؟ ددې وضاحت دادې.چه د زيد او خالد په مينځ كي يوه وينځ مشترك ده.او ددې بچى پيدا شو.او زيد دعوى اوكړه.چه دا زما د نطفې نه پيدا شوې دې.نو نيمه وينځه به دده ام ولد شي .خوده د خالد په برخه كي فساد واچولو.ځكه چې ام ولد د آزاد پشان وى .تردې چې ددې خرڅول جائز نه دى .په دې وجه به په زيد باندې واجب وى .چه د خالد د برخې تاوان وركړي .اوكله چې تاوان وركړي .اود پوره وينځې مالك شي .نو دا وينځه به پوره ام ولد شي .لكه مثلاً كه څوك خپله پوره وينځه استيلاد (ام ولد) كړي .نودا پوره ام ولد كيږي .او كه دا مشتركه وينځه د دواړو مدبره وى .يعنى دواړو ونيلى وى .چه ته زما د مرګ نه روسته آزاده ئې.نو په دې مسئله كي چې كوم كس ددې دبچى د عوى كړې وى .هم دده برخه به ام ولد وى .اوپاته برخه به مدبره وى .نو ثابته شوه.چه د استيلاد تكړې كيدلې شى .(عينى )

## په شريكينوكي د يوكس خپله برخه آزادول

وَإِذَا كَانَ الْعَبْدُ بَيْنَ شَرِيكَيْنِ او كه يوغلام په دوې [دوه] شريكانوكي ( مشترك) وو فَأَعْتَقَ أَحَدُهُمَا نَصِيبَهُ نو په دې دواړو كي يوكس خپله برخه آزاده كړله عَتَقَ نو دده برخه به آزاده وى فَإِنْ كَانَ مُوسِرًا بيا كه آزادونكې سړې توانګر وى فَشَرِيكُهُ بِالْخِيَارِ نو دده شريك ته اختيار دې إِنْ شَاءَ أَعْتَقَ كه غواړي نو خپله

برخه دې هم آزاده كړي وَإِنْ شَاءَ او كه غواړي ضَمَّنَ شَرِيكَهُ قِيمَةَ نَصِيبِهِ د خپل شريك( آزادونكى نه د خپلې برخې قيمت، تاوان واخلي. وَإِنْ شَاءَ اسْتَسْعَى الْعَبْدَ او كه غواړي .په غلام مزدوري اوكړي .( او وصول كړي فَإِنْ ضَمِنَ بيا كه ده ( دآزادونكى نه قيمت) تاوان واخستلو رَجَعَ الْمُعْتِقُ عَلَى الْعَبْدِ نو آزادونكى به د غلام نه رجوع كوي

**تشريح:-** صورت د مسئلې واضح دې.اود دلائلو لپاره راروانې كرخې اوګورئ.

وَالْوَلَاءُ لِلْمُعْتِقِ او ددې غلام ولاء به هم ددې آزادونكى لپاره وي وَإِنْ أَعْتَقَ اوكه شريك خپله برخه هم آزاده كړله أَوِاسْتَسْعَى يائې په غلام مزدوري اوكړله او وصول ئې كړله فَالْوَلَاءُ بَيْنَهُمَا نو دده ولاء به ددې دواړو لپاره مشترك وي وَإِنْ كَانَ الْمُعْتِقُ مُعْسِرًا اوكه آزادونكې غريب وي فَالشَّرِيكُ بِالْخِيَارِ نو شريك ته هم دا اختيار دې إِنْ شَاءَ أَعْتَقَ كه غواړي .نو خپله برخه آزاده كړي وَإِنْ شَاءَ اسْتَسْعَى الْعَبْدَ اوكه غواړي .په غلام باندې مزدوري اوكړي وَالْوَلَاءُ بَيْنَهُمَا فِي الْوَجْهَيْنِ په دې دواړو صورتونوكې به دده ولاء په دې دواړو شريكانوكې مشترك وي وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ اودا د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دى . وَقَالَا: لَيْسَ لَهُ إِلَّا الضَّمَانُ مَعَ الْيَسَارِ او صاحبين رحمهما الله فرمائي چې شريك ته صرف دا اختيار دې وَالسِّعَايَةُ مَعَ الْإِعْسَارِ كه ( آزادونكې)مالدار وي .نو دده نه تاوان واخلي وَلَا يَرْجِعُ الْمُعْتِقُ عَلَى الْعَبْدِ اودې د آزادونكى غلام نه واپس نشي اخستلې وَالْوَلَاءُ لِلْمُعْتِقِ او( كه آزادونكې) غريب وي .نو( په غلام) مزدوري اوكړي .او ولاء به صرف د آزادونكى لپاره وي .

**حل اللغة:** ① المعسر:غريب ② الموسر: مالدار③ استسعى: مزدوري اوكړه ④ الاعسار:تاوانى كول]

**تشريح:-** صورت د مسئلې واضح دې.اود دلائلو لپاره راروانې كرخې اوګورئ.

## د اعتاق حصې كيدل

وَهَذِهِ الْمَسْأَلَةُ تَنْبَنِي عَلَى حَرْفَيْنِ اودا مسئله په دوې [دوه] اصولو باندې مبنى ده أَحَدُهُمَا: تَجَزِّي الْإِعْتَاقِ اول داچه د اعتاق متجزى كيدل وَعَدَمُهُ او نه متجزى كيدل على مَا بَيَّنَّاهُ لكه څنګه چې موږ بيان كړل

**حل اللغة:** ① التيسير: آسانى كول ② القربة: ثواب ③ انصبغ: رنګ شوه④ سعاية:مزدوري ⑤ الساكت:چوپ ،خاموش]

**تشريح:-** صاحب دهدايه رحمه الله فرمائى .چه دا مسئله يعنى د آزادونكى خپل شريك ته ضمان ادا كاوه نه روسته د غلام نه واپس اخستل يا نه اخستل، په دوې [دوه] اصولو باندې مبنى دى .رومبې اصل دادې.چه د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز اعتاق تكړې كيږى .اود صاحبينو رحمهما الله په نيز اعتاق نه تكړې كيږى .لكه څنګه چې د باب په پيل كې بيان كړې شو.

وَالثَّانِي: أَنَّ يَسَارَ الْمُعْتِقِ او دوهم اصل داچه د آزادونكى مالداره كيدل لَا يَمْنَعُ سِعَايَةَ الْعَبْدِ عِنْدَهُ د امام صاحب رحمه الله په نيز دغلام مزدورئ كاوه نه مانع نه دى وَعِنْدَهُمَا يَمْنَعُ .اود صاحبينو رحمهما الله په نيز منع كوي

**تشريح:-** دوهم اصل دادې.چه كله آزادونكې مالداره وي .نو دده مالدارى د امام صاحب رحمه الله په نيز د غلام د مزدورئ مانع نه جوړيږى .اود صاحبيتو رحمهما الله په نيز مانع دې.د رومبى اصل دلائل وړاندې تيرشوى دى .

لَهُمَا فِي الثَّانِي د صاحبينو دليل د نبى كريم ﷺ قول دې د داسې كس په حق كې څوك چې خپله برخه آزاده قَوْلُهُ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الرَّجُلِ يُعْتِقُ نَصِيبَهُ: إِنْ كَانَ غَنِيًّا ضَمِنَ ( داسې اوفرمائيل) كه دا آزادونكې كس



توانګر وي .نو ضامن به وي وَإِنْ كَانَ فَقِيرًا .اوكه فقير وي سَعَى فِي حِصَّةِ الْآخَرِ (١) نود دويمې برخې لپاره به مزدوري كوي قسم( په دې حديث كې نبى كريم ﷺ ) په ويش باندې ووكړو وَالْقِسْمَةُ تُنَافِي الشَّرِكَةَ او ويش د شركت منافى دې

**تشريح:-** اود په دوهم اصل كې د صاحبينو رحمهما الله د دليل حاصل دادې.چه په دې مسئله كې د قياس مقتضى په دوې [دوه] اموروكې يو دې.يودا چې آزادونكې مالداره وي .او كه غريب وي .په دواړه صورتونوكې په آزادونكى باندې د خپل شريك لپاره ضمان واجب وي .ځكه چې ده د خپلې برخې آزادولو په وجه د خپل شريك برخه خرابه كړله.ځكه چې دده لپاره خپل ملك پاته ساتل او پخپله برخه كې تصرف كول متعذر دي .اود افساد ضمان د مالدارئ او غريبئ په وجه نه مختلف كيږى .

دوهم امر دادې.چه په آزادونكى باندې بالكل ضمان واجب نه وي .ځكه چې آزادونكى په خپله برخه كې تصرف كړې دې.او په خپله برخه كې تصرف كونكې نه متعدى وي .اونه په ده باندې ضمان واجبيږى .اګرچه دده د تصرف ضرر د بل ملك ته متجاوز شى .لكه مثلاً يوكس په خپله مځكه كې د فصل كټ كاوه نه روسته پاته پاتې ګيا ،بهوس وغيره اوسوزول.خو په دې سره د ګوانډى په ملك كې هم څه لرشان اوسوزيدل.نو په ده به د ګوانډى لپاره څه ضمان واجب نه وي .دا دواړه قياسونه چونكه متضاد دى .په دې وجه صاحبينو رحمهما الله دا دواړه پريخودل.او په هغه حديث باندې ئې عمل اوكړو.كوم چې آيمه صحاح ستة د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت كړې دې.يعنى نبى كريم ﷺ ددا سې كس په حق كې (څوك چې خپله برخه آزاده كړى ) ارشاد اوفرمائيلو .« إن كان غنياً وإن كان فقيراً سعي فى حصة الآخر الحـديث » دا آزادونكې مالداره وي .نود خپل شريكوال د برخې به ضامن وي .اوكه فقير وي .نود شريك دحصې لپاره به غلام مزدوري كوي ،په دې حديث كې د الله تعالى پاك رسول ﷺ ويش اوفرمائيلو .او ويش د شركت منافى دې.يعنى كه آزادونكې مالداره وي .نو صرف دې به ضامن وي .او په غلام باندې ئې سعايه يعنى مزدوري مقررنكړه.اوكه دې فقير وي .نو صرف په غلام باندې مزدوري ده.نو ددې نه معلومه شوه.چه د آزادونكى مالداره كيدل د غلام د مزدورئ نه مانع دې.(عنايه)

وَلَهُ اود امام صاحب رحمه الله دليل دادې أَنَّهُ احْتُبِسَتْ مَالِيَّةُ نَصِيبِهِ عِنْدَ الْعَبْدِ چې دشركت د برخې ماليت ددې غلام سره بند شو فَلَهُ أَنْ يُضَمِّنَهُ نو شريك ته اختيار دې.چه دده نه تاوان واخلي كَمَا إِذَا هَبَّتِ الرِّيحُ فِي ثَوْبِ إِنْسَانٍ لكه ( مثلا) هوا د يوكس كپړې اوچتې كړې وَأَلْقَتْهُ فِي صَبْغِ غَيْرِهِ اود يو بل( كس) په رنګ ( ديګچى ) كې ئې اوغورځولې. حَتَّى انْصَبَغَ بِهِ چې كپړه رنګينه شوه فَعَلَى صَاحِبِ الثَّوْبِ قِيمَةُ صَبْغِ الْآخَرِ نود كپړې په مالك باندې د بل كس د رنګ قيمت واجب دې مُوسِرًا كَانَ أَوْ مُعْسِرًا (كه) توانګر وي .او كه غريب وي لِمَا قُلْنَاهُ د هغه دليل په وجه كوم چې موږ بيان كړو فَكَذَا هَاهُنَا نوهم دغه ډول حكم دلته كې هم دې إِلَّا أَنَّ الْعَبْدَ فَقِيرٌ مګر داچه غلام( كه) فقير وي فَيَسْتَسْعِيهِ نو په غلام به مزدوري كوي

**تشريح:-** اود امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې.چه د شريك د برخې ماليت دې غلام سره بند شو.نوشريك ته اختيار دې.چه دده نه د خپل مال ضمان واخلي .يعنى په غلام باندې مزدوري اوكړي .اودا داسې ده. لكه مثلاًديوكس كپړې هوا يوسى .اود بل كس د رنګ په كړى (بالټى ) كې ئې واچوى .او كپړې رنګينې شى .يعنى كپړې رنګ رابنكى ، اوجذب ئې كړى .نود كپړې په مالك باندې واجب دى .چه د رنګريز د رنګ قيمت اداكړى .كه د كپړو والا مالداره وي .او كه غريب وي .ځكه چې د كپړو والا سره دده رنګ بند شوې

(١) من حديث أبى هريرة رضي الله عنه أخرجه البخارى فى الشركة باب ٥ ومسلم فى العتق رقم ٣ وأبوداود فى العتق باب ٥ رقم ٣٩٣٧ والترمذى فى الأحكام باب ١٤ وابن ماجه فى العتق باب ٧ رقم ٢٥٢٧ وأحمد فى المسند(٢\٢٥٥)۔

دي.نوهغه له تاوان اخستل جائز دی .نودغه ډول حکم دلته کي هم دي.خو دومره قدرې خبره ده.که غلام بالکل فقیر وی .نودي به په غلام مزدوری کوی .اودا به وصول کوی .

ثم المعتبر يسار التيسير بيا د مالدارئ نه مراد ،، يسار تيسير ،، دي وهو أن يملك من المال قدر قيمة نصيب الآخر يعني د دومره مال مالك كيدل،چه د شريك د برخې قيمت اداكړي لا يسار الغنى اويسار ( غناء مراد) نه ده لأن به يعتدل النظر من الجانبين خکه چې د تيسير په وجه د دواړو طرفونو رعايت په اعتدال پاتې کيږی بتحقيق ما قصده المعتق خکه چې څه آزادونکی اوغوښتل من القربة وإيصال يعنى قربت او ثواب بدل حق الساكت إليه هغه به ده ته حاصل شي .او ساکت ته به خپل حق اورسی .

تشريح:- اود صاحبينو رحمهما الله د پيش کړی حديث ځواب دادې.چه نبی کريم ﷺ د شرط په طورويش کړي دي. يعنی سعايه ئې د آزادونکی په غريبئ باندې معلق کړي دې.اودا د غريبئ د نه کيدلو په وخت د استسعاء يعنی د مزدورئ كاوه منافی نه دې.ځکه چې په کوم شرط باندې معلق کړې شی .نود شرط د وجود په وخت کي ددې موجود كيدل خو ضروری دی .خود عدم شرط په وخت ددې معدوم كيدل ضروری نه دی .مثلاً يوكس خپل غلام ته اووئيل.که ته کور ته داخل شوې.نو ته آزاد ئې.نو کورته د داخليدلو په صورت کي به غلام يقيناً آزاد وی .خود نه داخليدلو په صورت كي نه آزاديدل ضروری نه دی .بلکه آزاديدلې شی .په دې طريقه چې مولا ته بغير د څه شرط نه ،،انت حر،، اووائی .نوهم دغه ډول په دې مسئله كي هم د آزادونكی د مالدارئ باوجود په غلام باندې مزدوری كيدلې شی .ښكاره دې وی . چې د آزادونكی (په كوم كس چې تاوان واجب شوې دې) په مالدارئ كي ،،يسار تيسير،، معتبر دي. ،،يسار غناء،، معتبر نه دې. يسار تيسير دادې.چه د دومره مال مالك وی .چه د شريك د برخې قيمت اداكړی .اودا مقدار دده د كپړو،او دده د اهل وعيال د خرچه نه زياتی وی .هم دا ظاهرالرواية دې.او امام شافعی امام مالك،او امام احمد رحمهم الله هم ددې قائل دی .او بعضو مشائخو د حرمان نصاب اعتبار كړې دې.خو خوښه مسلك هغه دې.كوم چې ظاهرالرواية دې.دليل دادې.چه يسار تيسير يعنی په آسانئ سره د قيت ادا كاوه په لحاظ ساتلوكي د دواړو رعايت كيږی .ځكه چې آزادونكی څه غوښتل، يعنی د آزادولو په وجه ثواب او تقرب الى الله حاصليدل.دا به ده ته حاصل شی .او دده ساكت شريك ته به خپل حق وراورسی .

## په دواړه اصولوکې حکم

ثم التخريج على قولهما ظاهر بيا د صاحبينو رحمهما الله په قول باندې تخريج ( حكم راويستل) ښكاره دی فلا يرجع المعتق بما ضمن على العبد نود آزادونكی د غلام نه مال ضمان واپس نه اخستل ځكه دی لعدم السعاية عليه في حالة اليسار چې د مالدارئ په حالت كي غلام باندې سعايه واجب نه ده والولاء للمعتق او ولاء د آزادونكی لپاره دې لأن العتق كله من جهته ځكه چې پوره آزادی د آزادونكی د اړخه ده لعدم التجزي ځكه چې ( آزادی ) نه متجزی كيږی

حل اللغة* ① التضمين: ضامن كول ② تخريج: د مسائلو استنباط]

تشريح:- علامه مرغينانی رحمه الله فرمائی .چه دامسئله چونكه په ددوې [دوه] اصولو باندې مبنی ده.په دې وجه دې مسئله كي د دواړو اصولو په بناء باندې حكم راوښكلې شوې دې.نود صاحبينو رحمهما الله په قول باندې ددې مسئلې تخريج ښكاره دې.يعنی صاحبينو رحمهما الله چې كوم اصل اختيار كړې دې.په هغې سره ددې حكم راوښكل ښكاره دی .ځكه چې د صاحبينو رحمهما الله په نيزچونكه اعتاق تكړې كيدلې شی .په دې وجه به پوره غلام آزاد وی .اوچونكه د آزادونكی مالداره كيدل، دغلام د مزدورئ كاوه نه مانع دې.په دې وجه به د شريك لپاره په ده باندې ضمان واجب وی .او مزدوری كول به منتفی وی .او آزادونكې د مال تاوان د غلام نه ځكه نشی اخستلې.چه هركله د مالداره كيدلو په صورت كي دده تاوان وركړو.نو په دې حالت كي په غلام



باندې مزدوری كول واجب نه وو.لكه څنګه چې په اصل ثانی سره معلوم شو.او ولاء به د آزادونكی لپاره وی .ځكه چې د پوره غلام آزادول دده د اړخه متحقق شوی دی .ځكه چې اعتاق نه متجزی كيږی .لكه څنګه چې د ړومبی اصل نه معلوميږی .

وأما التخريج على قوله او پاتې شو دامام صاحب رحمه الله په قول باندې تخريج كول فللساكت الخيارات لقيام ملكه في الباقي نو ( شريك ته خپله حصه) د آزادولو اختيار دې ځكه چې په پاته كي دده ملك قائم دې إذ الإعتاق يتجزأ عنده ځكه چې د امام صاحب رحمه الله په نيز اعتاق تكړې كيداې شی والتضمين اود تاوان اخستلو( حق) ځكه دې لأن المعتق جان عليه بإفساده نصيبه چې آزادونكې ( خپله ) شريك برخه د خرابولو په وجه په ده باندې ظلم كونكې دې حيث امتنع عليه البيع والهبة ونحو ذلك مما سوى الإعتاق وتوابعه والاستسعاء چې په ده باندې دآزادولو او ددې توابع، او دكتې كاوه نه سواء، خرڅول، هبه كول وغيره ممتنع دی لما بينا د اصل دليل په وجه كوم چې موږ بيان كړې دي

تشريح:- او پاتی شو د امام ابوحنيفه رحمه الله په قول باندې ددې حكمونه راوښكل،نو داسې دی .چه دوهم شريك ته هم د خپلې برخې آزادولو اختيار دې.ځكه چې پخپله برخه كي دده ملك موجود دې.ځكه چې د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز اعتاق متجزی كيږی .اوده ته دا اختيارهم شته.چه دې د آزادونكی نه دخپلې برخې تاوان واخلی .ځكه چې آزادونكی دده په برخه باندې ظلم كړې دې.چه دده برخه ئې فاسد كړله.ځكه چې سوا د آزادولو او ددې توابع يعنی د مدبر يا مكاتب كولو، يا په ده باندې دمزدورئ كولو، ده ته دا قدرت پاتې نشو.چه خپله برخه وپلوری . يا ئې هبه كړی .اودا موږ بيان كړی دی .

ويرجع المعتق بما ضمن على العبد او آزادونكې به دتاوان رقم د غلام نه واپس اخلی ځكه چې آزادونكې تاوان وركړې دي لأنه قام مقام الساكت بأداء الضمان ( نو) د ساكت قائم مقام شو وقد كان له ذلك بالاستسعاء او ساكت ته دا اختيار وو.چه په غلام باندې مزدوری اوكړی فكذلك للمعتق نوهم دغه ډول به آزادونكی ته هم اختيار وی ولأنه ملكه بأداء الضمان ضمنا او په دې وجه چې آزادونكې د ضمان ادا كاوه په وجه ضمناً ددې غلام مالك شو فيصير نوداسې به شی كأن الكل له لكه چې پوره غلام دده دې. وقد عتق بعضه حال داچه ده يوجزء آزاد كړې دي فله أن يعتق الباقي نو دده اختيار دې.چه پاته آزاد كړی أو يستسعي إن شاء ياكه غواړی .نو په ده مزدوری اوكړی اوقيمت واخلی والولاء للمعتق في هذا الوجه او په دې صورت كي به ولاء د آزادونكې لپاره وی لأن العتق كله من جهته ځكه چې د پوره غلام آزادی دده د اړخه ( واقع) شوې ده حيث ملكه بأداء الضمان ځكه چې د ضمان ادا كاوه په وجه دې د پوره غلام مالك شو.

تشريح:- او پاتې شوه داچه آزادونكی كوم تاوان وركړلو.دا د غلام نه واپس اخستلې شی .ځكه چې هركله دده خپل شريك ته تاوان وركړو.نودې د شريك قائم مقام شو.او شريك ته دا اختيار وو.چه په غلام باندې مزدوری اوكړی .نو آزادونكی ته به هم دا اختيار وی .او دوهم دليل دادې.چه آزادونكې د ضمان ادا كاوه په وجه ددې غلام ضمناً مالك شو.اګرچه دې د صريحی ملكيت قابل نه دې.نوداسې شوه.چه ګويا پوره غلام هم دده دې.او حال دادې.چه ده يوجزء آزاد كړې دې.نوده ته اختيار شته.كه غواړی نوپاته هم آزاد كړی .او كه غواړی .نو په ده باندې مزدوری كوی .او قيمت واخلی .بيا د تاوان ادا كاوه په صورت كي به آزادنكی ته پوره ولاء ملاوشی .ځكه چې پوره غلام آزادول دده د اړخه شوی دی .ځكه چې د ضمان اداكولوپه وجه دې د پوره غلام مالك شو.

## د آزادونكي غريب كيدل

وفي حال إعسار المعتق اود آزادونكی د افلاس په صورت كي كه غواړی إن شاء أعتق ( نو خپله حصه) آزاد

کړي **لِبَقَاءِ مِلْكِهِ** ځکه چې دده ملکيت پاته دي **وَإِنْ شَاءَ اسْتَسْعَى** اوکه غواړي .نو مزدوري اوکړي **لِمَا بَيَّنَّا**.د هغه دليل په وجه کوم چې موږ بيان کړو **وَالْوَلَاءُ لَهُ فِي الْوَجْهَيْنِ** او په دواړو صورتونوکي شريك ساکت ته ( دده د برخې ) ولاء ملاويږي **لِأَنَّ الْعِتْقَ مِنْ جِهَتِهِ** ځکه چې آزادول دده د اړخه دی .

**حل اللغة:** ① **اعسار:** غريب کول ② **فکاک:** خلاصول ③ **سالب:** ختمونکې ④ **احتباس:** بندول، قيد کول]

**تشريح:-** ماقبل واړه تفصيلات هغه وخت وو.چه آزادونکې مالداره وی .اوکه آزادونکې غريب وی .نو ساکت (خاموش) شريکوال ته دا اختيار شته.که غواړي نوخپله برخه آزاده کړی .ځکه چې دده ملکيت پاته دي.او که غواړي .نو په غلام باندې مزدوری اوکړی .ځکه چې دده د برخې ماليت غلام سره بند شوي دي.او په دواړه صورتونوکي به ساکت شريکوال ته د خپلې برخې ولاء ملاويږي . ځکه چې آزادی دده د اړخه پيدا شوې ده.

**وَلَا يَرْجِعُ الْمُسْتَسْعِي عَلَى الْمُعْتِقِ بِمَا أَدَّى بِالْإِجْمَاعِ بَيَّنَّ** او په چاچه مزدوری شوې ده.( يعنی غلام) دې دا اداکړي شوې مال د خپل آزادونکی نه نشی اخستلې.( په دې کي ) د امام صاحب اود صاحبينو [رحمهم الله] اتفاق دي **لِأَنَّهُ يَسْعَى لِفِكَاكِ رَقَبَتِهِ** ځکه چې غلام خود خپل ځان آزادولو لپاره مزدوری کوی **أَوْ لَا يَقْضِي دَيْنًا عَلَى الْمُعْتِقِ** اوداسې پور نه اداکوی .چه په آزادونکی باندې وی **إِذْ لَا شَيْءَ عَلَيْهِ لِعُسْرَتِهِ** ځکه چې په آزادونکی باندې دده د غريبئ په وجه هيڅ نه لازميږی

**تشريح:-** او په کوم صورت کي چې ساکت شريك په غلام مزدوری کړې ده.غلام دا مال د خپل آزادونکی نه نشی اخستلې.په دې حکم کي امام ابوحنيفه او صاحبين [رحمهم الله] واړه متفق دی .ځکه چې غلام خود خپل ځان آزادولو لپاره مزدوری کوی .او داسې قرضه نه اداکوی .چه په آزادونکی باندې وی .ځکه چې د آزادونکی د غريبئ په وجه په ده هيڅ څه هم واجب نه دی .

**بِخِلَافِ الْمَرْهُونِ** په خلاف د هغه غلام چې رهن وی **إِذَا أَعْتَقَهُ الرَّاهِنُ الْمُعْسِرُ** چې کله غريب راهن دې آزاد کړی **لِأَنَّهُ يَسْعَى فِي رَقَبَتِهِ** ځکه چې غلام د خپل ځان لپاره مزدوری کوی .**قَدْ فُكَّتْ** حالانکه ( دده ځان) خلاص شوې وو **أَوْ يَقْضِي دَيْنًا عَلَى الرَّاهِنِ** ده داسې پور اداکړله.کومه چې په راهن باندې وه **فَلِهَذَا يَرْجِعُ عَلَيْهِ** نود راهن څخه به ئې واپس اخلی

**تشريح:-** په خلاف د هغه غلام چې رهن وی .او راهن دې آزاد کړی .حالانکه راهن د مرتهن قرضه د غريبئ په وجه نشی اداکولې.نو غلام به خپل قيمت لپاره مزدوری کوی .او مرتهن ته به ئې ورکوی .او بيا به ئې د راهن نه واپس اخلی .ددې دليل دادې.چه غلام د خپل قيمت لپاره مزدوری کړې ده.حالانکه دده ځان خلاص شوې وو.يا داسې اووايئ.چه ده داسې قرضه اداکړې ده.چه د راهن په ذمه وه.په دې وجه به ئې دا غلام د راهن نه واپس اخلی .

**وَقَوْلُ الشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللَّهُ فِي الْمُوسِرِ كَقَوْلِهِمَا** اود امام شافعی [رحمه الله] قول د توانگر په اړه کي د صاحبينو [رحمهما الله] د قول پشان دې. **وَقَالَ فِي الْمُعْسِرِ** اود غريبئ په صورت کي امام شافعی [رحمه الله] فرمائی **يَبْقَى نَصِيبُ السَّاكِتِ عَلَى مِلْكِهِ** .چه د ساکت برخه به دده په ملك باندې پاته پاتې وی . **يُبَاعُ وَيُوهَبُ** دا خرڅولې هم شی .اوهبه کولې ئې هم شی **لِأَنَّهُ لَا وَجْهَ إِلَى تَضْمِينِ الشَّرِيكِ لِإِعْسَارِهِ** ځکه چې دآزادونکی د غريبئ په وجه شريك ته دا اختيار نشته چې دده نه ضمان واخلی **وَلَا إِلَى السِّعَايَةِ** . اونه په غلام باندې د مزدورئ کاوه اختيار دې **لِأَنَّ الْعَبْدَ لَيْسَ بِجَانٍ** ځکه چې غلام نه ظلم کونکې دې **وَلَا رَاضٍ بِهِ** اونه په آزادئ باندې راضی دې **وَلَا إِلَى إِعْتَاقِ الْكُلِّ** اود پوره غلام آزادولو هم څه وجه نشته **لِلْإِضْرَارِ بِالسَّاكِتِ** ځکه چې ( په دې کي ) د ساکت ضرر دې **فَتَعَيَّنَ مَا عَيَّنَّاهُ** .نوڅه چې موږ متعين کړل.هغه متعين شو



**تشريح:-** صاحب دهدايه [رحمه الله] فرمائی .که آزادونکې مالداره وی .نو په دې کي د امام شافعی [رحمه الله] قول د صاحبينو [رحمهما الله] پشان دې.خو که آزادونکې غريب وی .نود امام شافعی [رحمه الله] مسلك دادې.چه د ساکت شريکوال برخه به دده په ملك باندې پاته وی .اگرچه دې خپله برخه وپلوری .يا ئې هبه کړی . يعنی دده په برخه کي به دده پوره ملکيت پاته وی .ځکه چې ساکت شريکوال خونه آزادونکې د خپلې برخې ضامن جوړولې شی .ځکه چې آزادونکې غريب او تنگدست دې.اونه ده ته په غلام د مزدورئ کاوه اختيار شته.ځکه چې غلام هيڅ ظلم نه دې کړې.او نه په آزاديدلو باندې راضی شوې وو.ځکه چې رضامندی بغير د علم نه نه متحقق کيږی .او دلته کي مولا د غلام د علم نه بغير دې آزاد کړې دې.نود غلام رضامندی هم موجود نشوه.او ددې هم څه وجه نشته.چه پوره غلام آزاد اوگرځولې شی .ځکه چې په دې کي ساکت شريك ته ضرر دې.نوموږ چې کوم بيان کړې دې.هم دا متعين دې.يعنی ساکت شريکوال د خپلې برخې مالك دې.نودې دا خرڅولې هم شی .او هبه کولې ئې هم شی .

**قُلْنَا** .موږ ددې دا ځواب ورکوو **إِلَى الْاِسْتِسْعَاءِ سَبِيلٌ** چې ( د شريك) ماليت ( دې غلام سره) بند شوې دې **لِأَنَّهُ لَا يَفْتَقِرُ إِلَى الْجِنَايَةِ** ځکه چې احتياج نشته جنايت ته **بَلْ تُبْتَنَى السِّعَايَةُ عَلَى احْتِبَاسِ الْمَالِيَّةِ** بلکه مبنی کيږی مزدوری په بندولو د ماليت باندې **فَلَا يُصَارُ إِلَى الْجَمْعِ بَيْنَ الْقُوَّةِ الْمُوجِبَةِ لِلْمَالِكِيَّةِ** .تسهيل نوپه يوغلام کي دواړه خبرې يعنی قوت کوم چې د مالکيت سبب دې **وَالضَّعْفِ السَّالِبِ لَهَا فِي شَخْصٍ وَاحِدٍ** او ضعف کوم چې ددې قوت سلب کونکې دې.نه جمع کيږی .

**تشريح:-** خوزموږ د اړخه ددې ځواب دادې.چه ساکت شريك ته په غلام باندې د مزدورئ کاوه لاره موجود ده.ځکه چې د مزدورئ کاوه لپاره ددې اړتيا نشته.چه غلام څه ظلم اوجرم کړې وی .بلکه دا خو په دې وجه دې.چه د ساکت شريك ماليت دې غلام سره بند شوې دې.نو هرکله چې مزدوری کول ممکن دی .نو په يو غلام کي به دواړه خبرې نه جمع کيږی .يعنی په غلام کي د آزاديدلو په وجه د مالك کيدلو قوت دې.اود پاته برخې د نه آزاديدلو په وجه دا قوت نشته.

### شريکينو په يو بل باندې د غلام آزادولو اقرار کول

**قَالَ** قدوری [رحمه الله] فرمائی **وَلَوْ شَهِدَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنَ الشَّرِيكَيْنِ عَلَى صَاحِبِهِ بِالْعِتْقِ** که په دوې [دوه] شريکانو کي هريو خپل انډيوالان باندې ( د غلام) آزادولوگواهی ورکړله **سَعَى الْعَبْدُ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا فِي نَصِيبِهِ** نو غلام به په دې دواړوکي د هر يو لپاره دده په برخه کي مزدوری کوی **مُوسِرَيْنِ كَانَا أَوْ مُعْسِرَيْنِ** که دواړه توانگر وی .اوکه غريبانان وی **عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ** ( دا) د ابوحنيفه [رحمه الله] په نيز دی **وَكَذَا إِذَا كَانَ أَحَدُهُمَا مُوسِرًا** اوهم دغه ډول که په دې دواړوکي يو توانگر وی **وَالْآخَرُ مُعْسِرًا** او دوهم فقير وی

**تشريح:-** صورت د مسئلې دادې.چه په دواړه شريکانو کي هر يوکس په بل باندې دا اقرار اوکړی . چې دده غلام آزاد کړې دې.نو په دې صورت کي په غلام واجب دی .چه د هريوکس د برخې لپاره مزدوری کوی .او ادا ئې کړی .که دواړه مالداره وی .او که غريب وی .دا دحضرت امام صاحب [رحمه الله] مذهب دې.اوهم دا حکم هغه وخت دی.چه کله په دواړو کي يو توانگر وی .او بل غريب وی .

**لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا يَزْعُمُ** ځکه چې په دې دواړوکي هريو گمان ( خيال) کوی **أَنَّ صَاحِبَهُ أَعْتَقَ نَصِيبَهُ** چې دده انډيوالان خپله برخه آزاده کړې ده **فَصَارَ مُكَاتَبًا فِي زَعْمِهِ عِنْدَهُ** نو دده د گمان مطابق دامام ابوحنيفه [رحمه الله] په نيز( داغلام) مکاتب شو **وَحَرُمَ عَلَيْهِ الْاِسْتِرْقَاقُ** او په ده باندې داغلام رقيق جوړول حرام شو **فَيُصَدَّقُ فِي حَقِّ نَفْسِهِ** نو دده په حق کي به تصديق کولای شی **فَيُمْنَعُ مِنِ اسْتِرْقَاقِهِ** نو غلام به د رقيق جوړولو نه منع کولای شی **وَيَسْتَسْعِيهِ** او په غلام به مزدوری کوی **لِأَنَّا تَيَقَّنَّا بِحَقِّ الْاِسْتِسْعَاءِ** ځکه موږ ته دا يقين دې.چه ده ته د مزدورئ کاوه

حق حاصل دي كَاذِبًا كَانَ أَوْصَادِقًا كه دي رشتوني وي .اوكه دروغجن وي أَوْمَمْلُوكُهُ يا مملوك دي لِأَنَّهُ مُكَاتَبُهُ خكه چي دا غلام دده مكاتب دي فَلِهَذَا يَسْتَسْعِيَانِهِ نو په دواړو كي په هريو باندي مزدوري كولې شي

تشريح:- دليل دادي.چه په دواړه شريكانو كي د هريو كس دا خيال دي.چه دده دوهم شريكوال خپله برخه آزاده كړي ده.نو دده د خيال مطابق دا غلام مكاتب شو.لكه څنګه چي د امام ابوحنيفه رحمه الله قول دي.اوس په ده باندي دا غلام رقيق جوړول حرام شو.نود شريك ګمان اګرچه د دوهم شريكوال په حق كي صحيح نه وي .خو پخپله به دده په حق كي تصديق كولې شي .په دي وجه به ددې نه منع كولې شي .چه دي خپل دا غلام رقيق جوړ نكړي .بلكه په ده باندي مزدوري اوكړي .ځكه چي موږ ته دا يقين دي.چه ده ته د مزدورئ كولوحق دي.كه دي په خپل قول كي رشتوني وي .او كه دروغژن وي .ځكه كه دا سړي په خپل قول كي رشتوني وي .نو غلام به مكاتب وي .او كه دروغژن وي .نو غلام به مملوك وي .اود مملوك كمائي دده د مولا لپاره وي .نو په دي وجه غلام يا مكاتب دي.يا مملوك دي.بهرحال په دواړه شريكانو كي هر يو په ده باندي مزدوري كولې شي .

وَلَا يَخْتَلِفُ ذَلِكَ بِالْيَسَارِ وَالْإِعْسَارِ اودا حكم د مالدارئ او فقيرئ په وجه نه مختلف كيږي لِأَنَّ حَقَّهُ فِي الْحَالَيْنِ فِي أَحَدِ شَيْئَيْنِ خكه چي د مولا حق په دواړو صورتونوكي په دوي [دوه] خبروكي يوه ( خامخا) ده لِأَنَّ يَسَارَ الْمُعْتِقِ لَا يَمْنَعُ السِّعَايَةَ عِنْدَهُ خكه چي دآزادونكي مالداري د امام صاحب رحمه الله په نيز مانع سعايه نه ده وَقَدْ تَعَذَّرَ التَّضْمِينُ لِإِنْكَارِ الشَّرِيكِ اود شريك د انكار په وجه تاوان اخستل متعذر دى ،فَتَعَيَّنَ الْآخَرُ نو دويمه خبره متعين شوه. وَهُوَ السِّعَايَةُ يعنى په غلام باندي مزدوري كول

تشريح:- اود! حكم دغريبئ اود مالدارئ په وجه نه مختلف كيږي .ځكه چي كوم كس په دوهم شريكوال باندي د خپلي برخي آزادولو دعوى كړې ده.په دواړه صورتونوكي په دوي [دوه] خبروكي يوه ده.يعني د مالدارئ په خبرې نه منع كوي .چه په غلام باندي مزدوري اوكړي .او دلته كي تاوان اخستل هم ناممكن دى .ځكه چي دا شريكوال د آزادولو نه منكر دي.بلكه البته مدعى دي.چه دده شريكوال غلام آزاد كړې دي.نو هركله چي تاوان اخستل ناممكن شو.نو اوس دويمه خبره پاتې شوه. يعنى هم دا اختيار پاتې شو.چه په غلام باندي مزدوري اوكړي .

وَالْوَلَاءُ لَهُمَا او ددي غلام ولاء به د دواړو شريكانو لپاره وي لِأَنَّ كُلًّا مِنْهُمَا يَقُولُ خكه په دواړوكښي هريو وائي عَتَقَ نَصِيبُ صَاحِبِي عَلَيْهِ بِإِعْتَاقِهِ چي د دوهم برخه دده په آزادولو سره آزاده شوه فَوَلَاؤُهُ لَهُ او دده ولاء زما ده وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ رَحِمَهُمَا اللهُ او صاحبين رحمهما الله فرمائي إِنْ كَانَا مُوسِرَيْنِ كه دواړه شريكان توانګر وي فَلَا سِعَايَةَ عَلَيْهِ نو په غلام باندي مزدوري واجب نه ده لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا يَتَبَرَّأُ عَنْ سِعَايَتِهِ خكه چي په شريكانوكي هريو دا غلام د مزدورئ كاوه نه برى كوي بِدَعْوَى الْعَتَاقِ عَلَى صَاحِبِهِ په دي وجه په خپل شريك باندي د ضمان دعوى كوي :لِأَنَّ يَسَارَ الْمُعْتِقِ يَمْنَعُ السِّعَايَةَ عِنْدَهُمَا خكه چي د صاحبينو رحمهما الله په نيز د آزادونكي مالداره كيدل غلام د مزدورئ كاوه نه منع كوي إِلَّا أَنَّ الدَّعْوَى لَمْ تَثْبُتْ لِإِنْكَارِ الْآخَرِ مګردا چي د دوهم د انكار په وجه دعوى نه ثابتيږي وَالْبَرَاءَةُ عَنِ السِّعَايَةِ قَدْ ثَبَتَتْ اود غلام مزدورئ نه برى كيدل.ثابت شو لِإِقْرَارِهِ عَلَى نَفْسِهِ خكه چي دده اقرار خپل ذات باندي لازم دي

تشريح:- او ددي غلام ولاء به د دواړو شريكانو وي .ځكه چي په دواړه شريكانوكي هر يو شريك دا وائي .چه د دوهم برخه دده په آزادولو سره آزاده شوه.نو دده ولاء هم دده دي.او زما برخه په مزدوري كاوه سره آزاده شوه.او په دي مسئله كي صاحبين رحمهما الله فرمائي .كه دواړه شريكان مالداره وي .نو په غلام باندي مزدوري واجب نه ده.ځكه چي هرشريك دا غلام د مزدورئ نه برى كوي .ځكه چي پخپل شريك باندي د تاوان دعوى



كوي .ځكه چي د صاحبينو رحمهما الله په نيز كله ازادونكئ مالداره وي .نو په غلام باندي سعايت نه لازميږي .خو ددي دعوى پخپل شريك باندي په دي وجه ثابت نشوه.چه دي انكار كوي .اودغلام د مزدورئ نه برى كيدل ثابت شو.ځكه چي دده اقرار پخپل ذات باندي لازم دي.

وَإِنْ كَانَا مُعْسِرَيْنِ .اوكه دواړه شريكان فقيران وي سَعَى لَهُمَا نو غلام به د دواړو لپاره مزدوري كوي لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا يَدَّعِي السِّعَايَةَ عَلَيْهِ خكه چي په دي دواړوكي هريو شريك په دي غلام باندي د مزدورئ مدعى دي صَادِقًا كَانَ أَوْكَاذِبًا كه رشتوني وي .او كه دروغجن وي عَلَى مَا بَيَّنَّاهُ ( لكه) چي موږ بيان كړل إِذِ الْمُعْتِقُ مُعْسِرٌ خكه چي آزادونكي غريب دي وَإِنْ كَانَ أَحَدُهُمَا مُوسِرًا وَالْآخَرُ مُعْسِرًا او كه په دي دواړو كي يومالدار او دوهم فقير وي سَعَى لِلْمُوسِرِ مِنْهُمَا نود توانګر لپاره به مزدوري كوي لِأَنَّهُ لَا يَدَّعِي الضَّمَانَ عَلَى صَاحِبِهِ لِإِعْسَارِهِ خكه چي دي پخپل شريك باندي دده د فقيرئ په وجه د تاوان دعوى نه كوي وَإِنَّمَا يَدَّعِي عَلَيْهِ السِّعَايَةَ بلكه په غلام باندي د مزدورئ دعوى كوي فَلَا يَتَبَرَّأُ عَنْهُ نو غلام به ددي نه نه برى كيږي وَلَا يَسْعَى لِلْمُعْسِرِ مِنْهُمَا اود فقير شريك لپاره به غلام هم مزدوري نه كوي لِأَنَّهُ يَدَّعِي الضَّمَانَ عَلَى صَاحِبِهِ لِيَسَارِهِ خكه چي دي پخپل شريك باندي دده د مالدارئ په وجه د ضمان دعوى كوي فَيَكُونُ مُبَرِّئًا لِلْعَبْدِ عَنِ السِّعَايَةِ نو فقير شريك غلام د مزدورئ برى كونكي شو وَالْوَلَاءُ مَوْقُوفٌ فِي جَمِيعِ ذَلِكَ عِنْدَهُمَا اود صاحبينو رحمهما الله په نيز په دي ټولو صورتونوكي ددي غلام ولاء موقوف وي لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا يُحِيلُهُ عَلَى صَاحِبِهِ خكه چي په دي دواړو كي هريو ددي ولاء په دوهم باندي وراچوي وَهُوَ يَتَبَرَّأُ عَنْهُ او دوهم ددي نه بيزارى ښكاره كوي فَيَبْقَى مَوْقُوفًا نو دده ولاء به موقوف وي إِلَى أَنْ يَتَّفِقَا عَلَى إِعْتَاقِ أَحَدِهِمَا تردي چي دواړه شريكان ديوكس په آزادولو باندي اتفاق اوكړي .

تشريح:- او كه دواړه شريكان غريبانان وي .نو غلام به د دواړو لپاره مزدوري كوي .ځكه چي هر يو شريكوال په دي غلام باندي د مزدورئ مدعي دي.كه دي رشتوني وي .او كه دروغژن وي .ځكه چي غلام باندي مزدورئ وجوب يقيني دي.ځكه چي آزادونكي غريب دي.او كه په دواړو كي يو مالداره وي .او بل غريب وي .نو غلام به د مالداره لپاره مزدوري كوي .ځكه چي دي په خپل شريكوال باندي دده د غريبئ په وجه د ضمان دعوى نه كوي .بلكه په غلام باندي د مزدورئ دعوى كوي .نو غلام به د مزدورئ كاوه نه نه برى كيږي .اود مفلس شريك لپاره به غلام هم مزدوري نه كوي .ځكه چي دي پخپل شريكوال باندي د تاوان دعوى كوي .ځكه چي دده شريك مالداره دي.غريب غلام د مزدورئ كاوه نه برى كړې دي.اود صاحبينو رحمهما الله په نيز ددي غلام ولاء به ټولو صورتونو كي موقوف وي .ځكه چي هريوكس دده آزادول په دوهم كس باندي وراچوي .او دوهم ددي نه انكار كوي .په دي وجه به دده ولاء موقوف وي .تردي چي دواړه شريكان د يوكس په آزادولو باندي اتفاق اوكړي .نو په كوم يوكس چي اتفاق راشي .د غلام ولاء به هم د هغه وي .

## د شريكينوغلام آزادول په څه د شرط پورې معلق كول

وَلَوْقَالَ أَحَدُ الشَّرِيكَيْنِ اوكه په دواړو شريكانو كي يو اووئيل إِنْ لَمْ يَدْخُلْ فُلَانٌ هَذِهِ الدَّارَ غَدًا كه صباله فلانې كس په دي كوركي داخل نشو. فَهُوَ حُرٌّ نودا غلام آزاد دي وَقَالَ الْآخَرُ: إِنْ دَخَلَ او دوهم اووئيل.كه دي ( په دي كوركي ) داخل شو فَهُوَ حُرٌّ نودا غلام آزاد دي فَمَضَى الْغَدُ بيا ( راروان ) سهار تيرشو وَلَا يُدْرَى اودا معلومه نشوه أَدَخَلَ أَمْ لَا چي دغه فلانې په دي كوركي داخل شوې دي اوكه نه عَتَقَ النِّصْفُ نو نيم غلام به آزاد وي وَسَعَى لَهُمَا فِي النِّصْفِ الْآخَرِ اود نيم غلام( قيمت) لپاره به ( داغلام) دواړو لپاره مزدوري كوي وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُمَا اللهُ اودا د ابوحنيفه اود ابويوسف رحمهما الله په نيز دى

حل اللغة: ① شيوع: خوروالي، ناقابل ويش ② توزيع: تقسيمول ③ التذكر: يادول]

تشريح:- صورت د مسئلې دادې.كه يو غلام د دوې [دوه] مالكانو په مينځ كې مشترك وى .بيا په دې دواړه شريكانوكې يو اووئيل. ﴿إن لم يدخل فلان هذه الدار غدا فهو حر﴾ او دوهم شريك اووئيل. ﴿إن دخل فلان هذه الدار فهو حر﴾ بيا صبانئ ورځ تيره شوه.اودا معلومه نشوه.چه فلانكې دې كور ته داخل شو. او كه داخل نشو.نو په دې صورت كې حكم دادې.چه نصف غلام آزاديږى .اود نيم د قيمت ادا كاوه لپاره به غلام د دواړه شريكانو لپاره مزدورى كوى .دا د شيخينو رحمهما الله مذهب دې.

وَقَالَ مُحَمَّدٌ رحمه الله او امام محمد رحمه الله فرمائى يَسْعَى فِي جَمِيعِ قِيمَتِهِ چې د پوره قيمت لپاره به مزدورى كوى لِأَنَّ الْمَقْضِيَّ عَلَيْهِ بِسُقُوطِ السِّعَايَةِ څكه چې په كوم باندې ( هم) د مزدورئ ساقطولو حكم ور كولاى شى مَجْهُولٌ هغه مجهول ( نامعلوم) دې وَلَا يُمْكِنُ الْقَضَاءُ عَلَى الْمَجْهُولِ او قضاء على المجهول دسره ممكن نه ده فصار نو داسې شوه كَمَا إِذَا لكه چې يوكس دوهم كس ته اووئيل قَالَ لِغَيْرِهِ لَكَ عَلَى أَحَدِنَا أَلْفُ دِرْهَمٍ ستا زر درهمه په موږ كې په يوكس دى فَإِنَّهُ لَا يَقْضِي بِشَيْءٍ لِلْجَهَالَةِ نود مجهول كيدو په وجه به هيڅ حكم نشى وركولې كَذَا هَذَا دغه ډول دلته كې هم دى

تشريح:- او امام محمد رحمه الله فرمائى .چه غلام به دپوره قيمت لپاره مزدورى كوى .په دې شرط چې دواړه شريكان غريبانان وى .او كه دواړه مالداره وى .نود يوكس لپاره به هم مزدورى نه كوى .او كه يومالداره او دوهم غريب وى .نود مالداره لپاره به په نيم قيمت كې مزدورى كوى .اود مفلس لپاره به مزدورى نه كوى .

د امام محمد رحمه الله دليل دادې.چه دكوم سړى په حق كې داحكم وركړې شو.چه دده سعايت ساقط دې.دده په اړه كې دامعلومه نه ده.دا كوم يو كس دې.اوكوم كس چې معلوم نه وى .په ده باندې دا حكم لګول ممكن هم نه دى .نودا داسې ده.لكه مثلاً يوكس بل كس ته اووائى .چه په موږ كې په يوكس باندې ستا زر درهمه دى .نو په كوم كس چې زر درهمه دى .دده د مجهول كيدلو په وجه به هيڅ حكم نشى لګولې.دغه ډول دلته كې هم ده.

وَلَهُمَا او د شيخينو رحمهما الله دليل دادې أَنَّا تَيَقَّنَّا بِسُقُوطِ نِصْفِ السِّعَايَةِ چې موږ ته د نيم سعايه ساقطولو يقين دې.لِأَنَّ أَحَدَهُمَا حَانِثٌ بِيَقِينٍ څكه چې په دې دواړو كې يو يقيناً حانث دې وَمَعَ التَّيَقُّنِ بِسُقُوطِ النِّصْفِ كَيْفَ يُقْضَى بِوُجُوبِ الْكُلِّ اود نيم سعايه ساقط كيدو د يقين باوجود د كُل د وجوب فيصله څنګه كولې شى ؟

تشريح:- اود شيخينو رحمهما الله دليل دادې.چه موږ ته نصف سعايه ساقطولو يقين دې.څكه چې په دواړو شريكانوكې يوكس په يقين سره حانث دې.يعنى دخول دار، يا عدم دخول دار.په دې دواړوكې يوشرط په يقين سره موجود شوې دې.او هركله چې يوشرط موجود شى .نو نصف غلام به په يقين سره آزاد وى .او كوم نصف چې آزاد وى .ددې د قيمت سعايه به هم ساقطه وى .نو هركله چې په يقين سره د نصف قيمت په اړه كې مزدورى كول ساقط شو.نود پوره قيمت د سعايه د وجوب فيصله به څنګه كيږى .نو ثابته شوه.چه غلام به د خپل نصف قيمت لپاره مزدورى كوى .او دواړه شريكانو ته به نې اداكوى .

وَالْجَهَالَةُ تَرْتَفِعُ بِالشُّيُوعِ وَالتَّوْزِيعِ اوجهالت( دواړو) باندې خورولو اود منقسم كاوه نه لرې كيږى .كَمَا إِذَا أَعْتَقَ أَحَدَ عَبْدَيْهِ لَا بِعَيْنِهِ لكه مثلاً يو كس خپلو دواړو غلامانو كې يوغير معين آزاد كړو أَوْ بِعَيْنِهِ ياني معين آزاد كړو. وَنَسِيَهُ او كوم نې چې معين كړې وو هغه نې هيركړو وَمَاتَ قَبْلَ التَّذَكُّرِ أَوِ الْبَيَانِ ...بيا د يادولو نه وړاندې ياد بيانولو نه وړاندې مړ شو وَيَتَأَتَّى التَّفْرِيعُ فِيهِ عَلَى او په مسئله كې تصريح په دې بنا (بنياد) ده أَنَّ الْيَسَارَ يَمْنَعُ السِّعَايَةَ چې مالدارى سعايه منع كوى أَوْلَا يَمْنَعُهَا اوكه نه منع كوى على الِاخْتِلَافِ الَّذِي سَبَقَ هم په هغه اختلاف كوم چې تير شو.

تشريح:- په دې عبارت سره د امام محمد رحمه الله د دليل ځواب وركوى .د ځواب حاصل دادې.چه مقضى عليه



(په كوم كس چې د سعايه ساقطيدلو حكم اوكړې شى ) بلاشبه مجهول دې.خو هركله چې دا نصف كوم چې آزاد شو.په دواړو باندې خور شو.اودا په دواړو حصوباندې ويش شو.نو دواړه مالكان (شريكان) مقضى عليه شو.او ښكاره خبره ده.چه د دواړو په مقضى عليه جوړولو كې هيڅ جهالت نشته.نو هركله چې جهالت لرې شو.نو غلام به د نصف قيمت لپاره مزدورى كوى .اودا نصف قيمت به د دواړو شريكانو لپاره وى .ددې مثال داسې دې.چه يوكس په خپلو دواړو غلامانو كې يو غيرمعين آزاد كړو.يا نې يو معين آزاد كړو.خوده دا متعين كړې غلام هير كړو.اود يادولو نه وړاندې يا د بيانولو نه وړاندې مړ شو.نو په دې دواړو غلامانوكې به هريو غلام نصف آزاد وى .او په دواړو غلامانوكې به هريو غلام د خپلې نيمې برخې د قيمت لپاره مزدورى كوى .او په دې صورت كې تفريع په دې خبره ده.چه مالداره كيدل د سعايه لپاره مانع دى .او كه نه دى .په دې كې هم هغه اختلاف دې.كوم چې وړاندې تير شو.يعنى د امام صاحب رحمه الله په نيز ممنوع نه دى .اود صاحبينو رحمهما الله په نيز ممنوع دى .

## د غلام أزادول څه د شرط پورې معلق كول

وَلَوْ حَلَفَا عَلَى عَبْدَيْنِ اوكه دوې [دوه] كسانو په دوې [دوه] غلامانو باندې قسم اوخوړلو كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا لِأَحَدِهِمَا بِعَيْنِهِ په دې دواړوكې هر يو د يو لپاره لَمْ يَعْتِقْ وَاحِدٌ مِنْهُمَا نو په دوى دواړو كې به يوهم آزاد نه وى لِأَنَّ الْمَقْضِيَّ عَلَيْهِ بِالْعِتْقِ مَجْهُولٌ څكه چې په كوم يو د آزاديدلو حكم اولګولې شو.هغه مجهول دې وَكَذَلِكَ الْمَقْضِيُّ لَهُ اوهم دغه ډول مقضى له هم ( غلام مجهول دې فَتَفَاحَشَتِ الْجَهَالَةُ نو جهالت ډير زيات شو.نو فَامْتَنَعَ الْقَضَاءُ قضاء ممتنع شوه

تشريح:- صورت د مسئلې دادې.چه په دوې [دوه] سړوكې د هر يوكس لپاره ځانله (جدا) غلام دې.نو په دوى كې يوكس اووئيل. ﴿إن دخل زيد هذه الدار غدا فعبدى حر﴾ دوهم اووئيل. ﴿إن لم يدخل زيد هذه الدار غدا فعبدى حر﴾ بيا صبانئ ورځ تيره شوه.اودا معلومه نشوه.چه زيد كور ته داخل شوې دې.او كه نه دې داخل شوې.نو په دې صورت كې به هيڅ يوغلام آزاد نه وى .اودا حكم متفق عليه دې.دليل دا دې.چه په كوم مولا باندې دا حكم وركړې كيږى .چه دده غلام آزاد شوې دې.هغه مجهول دې.او دغه شان چې كوم غلام آزاد شوې دې.هغه هم مجهول دې.نو دلته كې جهالت فاحشه موجود شو.نوددې جهالت فاحشه په وجه قاضى هيڅ حكم نشى وركولې.

وَفِي الْعَبْدِ الْوَاحِدِ الْمَقْضِيُّ لَهُ وَالْمَقْضِيُّ بِهِ مَعْلُومٌ او په يو غلام كې مقضى به معلوم دې فَغَلَبَ الْمَعْلُومُ الْمَجْهُولَ نو معلوم په مجهول باندې غالب شو.

تشريح:- اوكه په يوغلام كې دا كلام وې.نودا غلام معلوم وو.صرف دامجهول وو.چه په كوم شريك باندې دا حكم اولګولې شى .نو په دې صورت كې به معلوم په مجهول باندې غالب كولې شى .بيا به قاضى حكم كوى .

## خپل ځوى د بل كس سره شريك اخستل

وَإِذَا اشْتَرَى الرَّجُلَانِ اوكه دواړو سړو ( داسې غلام) واخستلو ابْنَ أَحَدِهِمَا چې دا په دې دواړوكې د يوكس زوې دې عَتَقَ نَصِيبُ الْأَبِ نود پلار حصه به آزاده وى لِأَنَّهُ مَلَكَ شِقْصَ قَرِيبِهِ څكه چې دې د خپل قريب ( ذى رحم محرم) د نيمې برخې مالك شو وَشِرَاؤُهُ إِعْتَاقٌ او دده اخستل اعتاق دى عَلَى مَا مَرَّ لكه چې تير شو وَلَا ضَمَانَ عَلَيْهِ او په پلار به تاوان واجب نه وى . عَلِمَ الْآخَرُ (كه) دې بل ته پته وى أَنَّهُ ابْنُ شَرِيكِهِ چې دا دده د شريك زوې دې أَوْلَمْ يَعْلَمْ اوكه پته نه لګى وَكَذَا إِذَا وَرِثَاهُ اوهم دغه ډول كه دې دواړو ته دا غلام په ميراث كې ملاؤ شو وَالشَّرِيكُ بِالْخِيَارِ وشريك ته دا اختيارشته إِنْ شَاءَ أَعْتَقَ نَصِيبَهُ كه غواړى .نو خپله برخه آزاده كړى وَإِنْ شَاءَ اسْتَسْعَى الْعَبْدَ

.او كه غواړي په غلام باندې مزدوري اوكړي **وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ** اودا د ابوحنيفه رحمه الله مذهب دي

**حل اللغة:** ① اليسار: مالداري ② الاعسار: فقيري ] شقص: نيمه برخه ]

**تشريح:-** صورت د مسئلې دادې چه پلار او يوبل كس ملاؤ شو.او په شريكه ئې خپل زوې واخستلو. نود پلار برخه به آزاده وى .ځكه چې دې د خپل قرابت دار دجزء مالك شو.او قرابتي اخستل آزادول دى .لكه څنګه چې په ،،فصل من ملك ذا رحم محرم،، كي تير شو.او په پلار به ضمان واجب نه وى .كه شريك ته دا پته وى .چه دا زما زوې دې.اوكه دا پته نه وى .او هم دا حكم هغه وخت دې.هركله چې دې دواړو دا غلام په ميراث كي حاصل كړو.يعنى د پلار برخه به آزاده شى . ددې صورت به دا وى .چه يوې ښځې د خپل خاوند زوې واخستلو.بيا دا ښځه مړه شوه.او دې خپل خاوند او رور پريخودل.نوددې غلام نصف به د خاوند لپاره وى .او په ده به آزاد وى .بيا د پلار نه علاوه نورو شريكانو ته دا اختيار دې.كه غواړي نو خپله برخه دې آزاده كړي .او كه غواړي په غلام دې مزدورى كوى .او خپل قيمت دې واخلى .دا د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله قول دې.

**وَقَالَا** او صاحبين رحمهما الله فرمائى **فِي الشِّرَاءِ يَضْمَنُ الْأَبُ نِصْفَ قِيْمَتِهِ إِنْ كَانَ مُوْسِرًا** چې داخستلو په صورت كي كه پلار توانګر وى .نو پلار به دده د نصف قيمت ضامن وى . **وَإِنْ كَانَ مُعْسِرًا** اوكه فقير وى **سَعَى الْاِبْنُ فِي نِصْفِ قِيْمَتِهِ لِشَرِيْكِ أَبِيْهِ** نو زوې به خپل نصف قيمت كي د خپل پلار شريكوال لپاره مزدورى كوى **وَعَلٰى هٰذَا الْخِلَافِ** اوهم دا اختلاف هغه وخت دې **إِذَا مَلَكَاهُ بِهِبَةٍ أَوْ صَدَقَةٍ أَوْ وَصِيَّةٍ** چې كله دا دواړه ددې غلام مالكان شى د هبې په طور ،يا په طور د صدقې،يا په طور د وصيت، **وَعَلٰى هٰذَا** او هم دا اختلاف په هغه صورت كي دې **إِذَا اشْتَرَاهُ رَجُلَانِ** چې دا سړو واخستلو **وَأَحَدُهُمَا قَدْ حَلَفَ** حالانكه يوقسم خوړلې وو **بِعِتْقِهِ إِنِ اشْتَرٰى نِصْفَهُ** كه چرې زه ددې غلام نيمه واخلم نودا آزاد دي

**تشريح:-** اوصاحبين رحمهما الله فرمائى .چه د ميراث په صورت كي خو هم داحكم دې.خود اخستلو په صورت كي كه پلار مالداره وى .نود ځوى د نيم قيمت به د شريك لپاره ضامن وى .او كه پلار غريب وى .نو زوې به مزدورى كوى .اوخپل نيم قيمت به ادا كوى .اوهم دا اختلاف په دې صورت كي دې.چه كله پلار او بل كس ددې غلام د هبه په طور مالكان شى .په دې طريقه چې يو سړى ددې دواړو لپاره دا غلام صدقه كړلو.يا ئې د وصيت په طور مالكان شو.په دې طريقه چې يوسړى ددې دواړو لپاره ددې غلام وصيت اوكړو.اوهم دا اختلاف په دې صورت كي دې.چه دوى سړې دا واخلى .حالانكه يوكس دا قسم خوړلې وو.كه ما دا غلام نيم واخستلو.نودا دې آزاد وى .

**لَهُمَا** د صاحبينو رحمهما الله دليل دادې **أَنَّهُ أَبْطَلَ نَصِيْبَ صَاحِبِهِ بِالْإِعْتَاقِ** چې پلار آزادكړو نود خپل ملګرى حصه ئې باطل كړله **لِأَنَّ شِرَاءَ الْقَرِيْبِ إِعْتَاقٌ** ځكه چې د قريب اخستل آزادول وى **وَصَارَ هٰذَا** او داسې شوه **كَمَا إِذَا كَانَ الْعَبْدُ بَيْنَ أَجْنَبِيَّيْنِ** لكه چې غلام د دوې [دوه] اجنبيانو( پردو ، غيرذى رحم محرم) كښې شريك وى **فَأَعْتَقَ أَحَدُهُمَا نَصِيْبَهُ** نو يوكس خپله برخه آزاده كړله

**تشريح:-** د صاحبينو رحمهما الله دليل دادې.چه پلار خپل برخه آزاده كړله.نود خپل انډيوالان برخه ئې باطله كړله.ځكه چې د قريبى رشته دار اخستل آزادول دى .اودا داسې صورت شو.لكه مثلاً يو غلام د دوې [دوه] اجنبى كسانو په مينځ كي مشترك وى .بيا په دې دواړو كي يوكس خپله برخه آزاده كړي .نو چونكه د صاحبينو رحمهما الله په نيز اعتاق نه متجزى كيږي .په دې وجه كه آزادونكې سړې مالداره وى .نود خپل انډيوالان د برخې به ضامن وى .اوكه غريب وى .نو غلام به مزدورى كوى .اوخپل نيم قيمت به ادا كوى .

**وَلَهُ** اود ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې **أَنَّهُ رَضِيَ بِإِفْسَادِ نَصِيْبِهِ** چې شريك د خپلې برخې په خرابولو باندې راضى شوې



**فَلَا يَضْمَنُهُ** وو په دې وجه د پلار نه تاوان نشى اخستې **كَمَا إِذَا أَذِنَ لَهُ بِإِعْتَاقِ نَصِيْبِهِ صَرِيْحًا** لكه چې كله ئې دده خپلې برخې آزادولو صراحةً اجازت وركړو **وَدَلَالَةُ ذٰلِكَ** او ددې رضا مندئ دليل دادې **أَنَّهُ شَارَكَهُ فِيْمَا هُوَ عِلَّةُ الْعِتْقِ** چې شريك پلار سره په داسې شى كي شركت اوكړو.كوم چې د آزاديدلو علت دې **وَهُوَ الشِّرَاءُ** يعنى اخستل **لِأَنَّ شِرَاءَ الْقَرِيْبِ إِعْتَاقٌ** ځكه چې د قريب اخستل آزادول وى **حَتّٰى يَخْرُجَ بِهِ عَنْ عُهْدَةِ الْكَفَّارَةِ عِنْدَنَا** .تردې چې زموږ په نيز د قريب د شراء په وجه د كفارې ذمه دارئ نه خلاصيږي **وَهٰذَا ضَمَانُ إِفْسَادٍ فِيْ ظَاهِرِ قَوْلِهِمَا** اود صاحبينو رحمهما الله په ظاهرى قول كي ددې خرابولو تاوان دې. **حَتّٰى يَخْتَلِفَ بِالْيَسَارِ وَالْإِعْسَارِ** تردې چې د مالدارئ او فقيرئ په وجه مختلف كيږي **فَيَسْقُطُ بِالرِّضَا** نود رضامندئ په وجه ( تاوان) ساقطيږي

**تشريح:-** اود امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې.چه شريك آخر په خپله برخه خرابولو باندې راضى وو.او رضامندئ سره ظلم نه جمع كيږي .نودې د پلار نه تاوان نشي اخستلې.لكه مثلاً يو شريكوال بل شريكوال ته دده د برخې آزادولو صريح اجازت وركړي .اود شريك آخر د خپلې برخې په خرابولو باندې د رضامندئ دليل دادې.چه شريك د غلام د پلار سره په داسې شى كي شركت كړې دې. كوم چې د آزاديدلو علت دې.يعنى اخستل.ځكه چې د قريبى رشته دار اخستل آزادول دى .

ⓐ په دې عبارت كي تسامح ده.هغه داچه مصنف د هدايه رحمه الله فرمائى .چه د قريبى رشته دار اخستل د عتق علت دې.حالانكه د قريب شراء د ملك علت دې.او ملك د عتق علت دې.نود قريبى رشته دار اخستل د عتق علت نه دې.بلكه ،،علت العلت،، دې.خو ددې تسامح ځواب دادې.چه حكم څنګه علت ارخ ته منسوب كولې شى .دغه ډول ،،علت العلت،، ارخ ته هم منسوب كولې شى . نو ثابته شوه.چه د قريبى رشته دار په اخستلو سره دا آزاديږي .نو كه په ده باندې د كفاره غلام وى . نود قريبى رشته دار په اخستلو سره زموږ په نيز كفاره اداكيږي .اود صاحبينو رحمهما الله ظاهرى قول دادې. چې دا ضمان افساد دې.ضمان تملك نه دې.تردې چې د يسار او اعسار په وجه مختلف كيږي .نو هركله چې شريك ددې په خرابولو باندې راضى شو.نو ضمان ساقط شو.

**وَلَا يَخْتَلِفُ الْجَوَابُ بَيْنَ الْعِلْمِ وَعَدَمِهِ** او حكم د علم او عدم علم په صورت كي نه مختلف كيږي **وَهُوَ ظَاهِرُ الرِّوَايَةِ عَنْهُ** اوهم دا د امام صاحب رحمه الله نه ظاهرالرواية دې **لِأَنَّ الْحُكْمَ يُدَارُ عَلَى السَّبَبِ** ځكه چې دحكم مدار خوپه علت باندې دې **كَمَا إِذَا قَالَ لِغَيْرِهِ** لكه مثلاً يو كس بل ته اووئيل **كُلْ هٰذَا الطَّعَامَ** چې دا خوراك اوخوره **وَهُوَ مَمْلُوْكٌ لِلْآمِرِ** حالانكه دا د آمر مملوك دې **وَلَا يَعْلَمُ الْآمِرُ بِمِلْكِهِ** او آمر ته د خپل ملك علم نشته.

**تشريح:-** علامه مرغينانى رحمه الله فرمائى .كه شريك ته معلومه وى .چه دا دده زوې دې.او كه معلومه نه وى .په دواړو صورتونوكي هم دا حكم دې.اودا حكم د امام ابوحنيفه رحمه الله نه ظاهرالرواية دې.ځكه چې د حكم مدار په علت باندې وى .لكه مثلاً يوكس بل كس ته اووئيل.چه دا خوراك اوخوره.حالانكه دا خوراك د آمرملك دې.او آمر ته ددې علم هم نه وو.چه دا خوراك زما مملوك دې.نو مامور دا خوراك اوخوړلو.نومامور به د آمر لپاره د هيڅ شى ضامن نه وى . اګرچه آمر په دې باندې راضى نه دې.او دنه راضى كيدلو دليل دادې.چه ددې علم نشته.

## د خپل ځوى نصف أخر اخستل

**وَإِنْ بَدَأَ الْأَجْنَبِيُّ فَاشْتَرٰى نِصْفَهُ** اوكه اول اجنبى ( غيرذى رحم محرم) ددې غلام نصف واخستلو **ثُمَّ اشْتَرَى الْأَبُ نِصْفَهُ الْآخَرَ** بيا پلار دده نصف آخر واخستلو. **وَهُوَ مُوْسِرٌ** حالانكه دده پلار توانګر دې **فَالْأَجْنَبِيُّ بِالْخِيَارِ إِنْ شَاءَ** نو اجنبى ته اختيار دې.كه غواړي **ضَمَّنَ الْأَبَ** نود پلار نه تاوان واخلى **لِأَنَّهُ مَا رَضِيَ بِإِفْسَادِ نَصِيْبِهِ** .ځكه چې دې پخپله برخه خرابولو باندې راضى نه دې **وَإِنْ شَاءَ اسْتَسْعَى الْاِبْنَ فِي نِصْفِ قِيْمَتِهِ** اوكه غواړي ،په ځوى باندې د

نصف قیمت لپاره مزدوری اوکړی لِاحْتِبَاسِ مَالِيَّتِهِ عِنْدَهُ ځکه چې خوی سره دده مالیت بند شوې دې وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ اودا د ابوحنیفه رحمه الله په نیز دی لِأَنَّ يَسَارَ الْمُعْتِقِ لَا يَمْنَعُ السِّعَايَةَ عِنْدَهُ ځکه چې د امام صاحب رحمه الله په نیز د آزادونکی مالداریٔ سره د غلام سعی کول نه ممتنع کیږی

**حل اللغة:** ① **الاحتباس:** بندول ② **السعایة:** کوشش، مزدوری ③ **یسار:** مالداری ]

**تشریح:-** صورت د مسئلې دادې.چه رومبې یو اجنبی سړی د غلام نصف واخستلو.بیا دده پلار دده نصف آخر واخستلو.په داسې حال کې چې د غلام پلار مالداره دې.نو په دې صورت کې اجنبی کس ته دا اختیار شته.چه دې د غلام د پلار نه د خپلې نیمې برخې تاوان واخلی .ځکه چې دا اجنبی کس د خپلې برخې په خرابولو په هیڅ شان راضی نه وو.او که غواړی .نود خوی (غلام) نه دې ددې نصف قیمت په مزدوریٔ کاوه وصول کړی .ځکه چې دې غلام سره دده امانت پروت دې.دا د امام اعظم رحمه الله مذهب دې.ځکه چې د امام صاحب رحمه الله په نیز د آزادونکی مالداره کیدل د سعایه مانع نه دی .

وَقَالَا: لَا خِيَارَ لَهُ او صاحبین رحمهما الله فرمائی .چه د سعی کاوه اختیارنشته. وَيَضْمَنُ الْأَبُ نِصْفَ قِيمَتِهِ بلکه پلار به دده د نصف قیمت تاوان ورکوی لِأَنَّ يَسَارَ الْمُعْتِقِ يَمْنَعُ السِّعَايَةَ عِنْدَهُمَا ځکه چې د صاحبینو رحمهما الله په نیز د آزادونکی مالداره کیدل مانع د سعایه دې

**تشریح:-** اوصاحبین رحمهما الله فرمائی .چه د سعی کاوه اختیارنشته. بلکه پلار به دده د نصف قیمت تاوان ورکوی ځکه چې د دوی په نیز د آزادونکی یسار(مالداری ) د سعایه (مزدوریٔ) مانع دې.

## د خپل ځوی نیمه برخه اخستل

وَمَنِ اشْتَرَى نِصْفَ ابْنِهِ او چاچه خپل زوې واخستلو وَهُوَ مُوسِرٌ حالانکه دې توانګر دې فَلَا ضَمَانَ عَلَيْهِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ نود ابوحنیفه رحمه الله په نیز په ده باندې ضمان نشته وَقَالَا: يَضْمَنُ او صاحبین رحمهما الله فرمائی .چه ضامن به وی إِذَا كَانَ مُوسِرًا په دې شرط چې دې مالداره وی وَمَعْنَاهُ ددې مسئلې مطلب دادې إِذَا اشْتَرَى نِصْفَهُ مِمَّنْ يَمْلِكُ كُلَّهُ چې کوم کس دده د پوره خوی مالك وو د هغه نه دده پلار نیمه واخستله است فَلَا يَضْمَنُ لِبَائِعِهِ شَيْئًا عِنْدَهُ نود امام صاحب رحمه الله په نیز به د بائع لپاره د هیڅ ضامن نه وی وَالْوَجْهُ قَدْ ذَكَرْنَاهُ او ددې وجه موږ بیان کړې ده.

**تشریح:-** امام محمد رحمه الله په جامع صغیر کې فرمائی .چه یوسړې د پوره غلام مالك وی .دده نه ددې غلام پلار نصف واخستلو.په داسې حال کې چې دې مالداره وی .نود امام صاحب رحمه الله په نیز د بائع لپاره په پلار باندې تاوان واجب نه دې.او صاحبین رحمهما الله فرمائی .چه پلار به د بائع لپاره د نصف قیمت ضامن وی .په دې شرط چې پلار توانګر وی .دلیلونه وړاندې تیر شوی دی .

## د دریو کسانو مشترك غلام مدبر کول

وَإِذَا كَانَ الْعَبْدُ بَيْنَ ثَلَاثَةِ نَفَرٍ اوکه یو غلام د درې سړو په منځ کې ( مشترك) وی فَدَبَّرَهُ أَحَدُهُمْ نو په دوی کې یوکس دا مدبرکړو وَهُوَ مُوسِرٌ حالانکه دا کس توانګر دې ثُمَّ أَعْتَقَهُ الْآخَرُ بیا دوهم دا آزاد کړو وَهُوَ مُوسِرٌ اودا هم توانګر دې فَأَرَادُوا الضَّمَانَ بیا دوی تاوان اوغوښتلو فَلِلسَّاكِتِ نو خاموش پاتې کیدونکی ته اختیار دې أَنْ يُضَمِّنَ الْمُدَبِّرَ ثُلُثَ قِيمَتِهِ قِنًّا چې دې مدبر کونکیٔ د خالص غلام د دریمې ( حصې) د قیمت ضامن جوړکړی وَلَا يُضَمِّنَ الْمُعْتِقَ اوآزادونکیٔ ضامن جوړنکړی مُدَبَّرًا و مدبرکونکی ته دا اختیار دې. لِلْمُدَبِّرِ أَنْ يُضَمِّنَ الْمُعْتِقَ ثُلُثَ قِيمَتِهِ چې د آزادونکی نه ددې غلام دریمه ( حصه) قیمت د مدبرکیدلو په حساب سره تاوان واخلی وَلَا يُضَمِّنَهُ او ضامن جوړنکړی الثُّلُثَ الَّذِي ضَمِنَ دده درې حصې ،دکومې چې دې پخپله ضامن شو و



وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ اودا د ابوحنیفه رحمه الله په نیز دی

**حل اللغة:** ① **الساکت:** چپ ،خاموش ② **نفر:** کسان، سړی ]

**تشریح:-** زده کړه دا خبره چې د مدبر قیمت د شریعت په نظر کې د رقیق (خالص غلام) د قیمت په دریو حصوکې د دوې [دوه] برخو برابر وی .مثلاً که د غلام قیمت ۲۷ دینار وی .نود مدبر قیمت به ۱۸ دینار وی اوس د مسئلې په صورت باندې نظر واچویٔ.صورت د مسئلې دادې.که یوغلام د دریوسړو په مینځ کې مشترك وی .بیا په دوی کې یو کس دا مدبر کړو.حالانکه دا مدبر کونکې شریك توانګر دې.بیا دوهم شریك دې آزاد کړلو.اودا هم توانګر دې.بیا خاموشه پاتې کیدونکی ،او مدبرکونکی شریکانو تاوان اوغوښتلو.نو ساکت ته اختیار دې.چه دې مدبر کونکې شریکوال د خالص غلام د دریمې برخې ضامن جوړکړی .او آزادونکې کس ضامن جوړنکړی .او مدبر کونکی ته اختیار دې.چه دې د آزادونکی نه د مدبر د دریمې برخې د قیمت تاوان واخلی .اود کومې دریمې برخې د قیمت چې دې د ساکت لپاره ضامن شوې وو.د آزادونکی نه نشی اخستلې.مثلاً د خالص غلام قیمت ۲۷ دینار دې.اود خالص غلام د قیمت دریمه برخه ۹ دینار دی .نو حاصل داشو.چه مدبر کونکې شریك د آزادونکی نه ۶ دیناره تاوان اخستلې شی .او۹ دیناره د تاوان په طور نشی اخستلې.دا قول د حضرت امام اعظم ابوحنیفه رحمه الله دې.

وَقَالَا الْعَبْدُ كُلُّهُ لِلَّذِي دَبَّرَهُ أَوَّلَ مَرَّةٍ او صاحبین رحمهما الله فرمائی .چه پوره غلام هم ددې کس دې کوم چې ده د ټولو نه رومبې مدبر کړې وو وَيَضْمَنُ ثُلُثَيْ قِيمَتِهِ لِشَرِيكَيْهِ او مدبرکونکې به د دریو دوې [دوه] برخې قیمت خپلو دواړو شریکانو ته تاوان ورکوی مُوسِرًا كَانَ أَوْ مُعْسِرًا که دې توانګر وی .اوکه فقیر وی .

**تشریح:-** صاحبین رحمهما الله فرمائی .چه پوره غلام د هغه کس دې.چاچه دې د ټولو نه وړاندې مدبرکړې وو.او روسته آزادول باطل دی .او مدبر کونکې به ددې غلام د قیمت په دریو حصوکې دوې [دوه] برخې خپلو شریکانو ته تاوان ورکوی .که دا مدبرکونکې مالداره وی .او که غریب وی .

## مدبر کول حصې کول دی اوکه نه؟

وَأَصْلُ هٰذَا او ددې اختلاف اصل دادې أَنَّ التَّدْبِيرَ يَتَجَزَّأُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ چې د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز مدبر کول هم ټکړې کیږی خِلَافًا لَهُمَا د صاحبینو رحمهما الله اختلاف دې كَالْإِعْتَاقِ لکه آزادول

**حل اللغة:** ① **سد:** بندې کړې ② **طرق:** جمع د **طریقة:** لاره،طریقه ③ **الاعتاق:** آزادول ④ **متجزئا:** تقسیمیدونکې]

**تشریح:-** صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی .چه ددې اختلاف اصل دادې.چه د امام اعظم رحمه الله په نیز مدبر کول متجزی (ټکړې) کول دی .اود صاحبینو رحمهما الله په نیز نه متجزی کیږی .لکه آزادول.په دې کې اختلاف دې.د امام صاحب رحمه الله په نیزاعتاق متجزی کیږی .اود صاحبینو رحمهما الله په نیز نه متجزی کیږی.

لِأَنَّهُ شُعْبَةٌ مِنْ شُعَبِهِ ځکه چې مدبرکول هم د آزادولو یو ښاخ دې فَيَكُونُ مُعْتَبَرًا بِهِ نو په آزادولو به دا قیاس کیږی وَلَمَّا كَانَ مُتَجَزِّئًا او هرکله چې مدبر ټکړې کیدای شی عِنْدَهُ د امام صاحب رحمه الله په نیز، اقْتَصَرَ عَلَى نَصِيبِهِ نو هم دده په برخې باندې منحصر وی وَقَدْ أَفْسَدَ بِالتَّدْبِيرِ نَصِيبَ الْآخَرَيْنِ او مدبر کونکی د نورو دواړو ( شریکانو) برخې خرابې کړې فَلِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا .نو په دې دواړو کې هریو ته دا اختیار دې أَنْ يُدَبِّرَ نَصِيبَهُ چې خپله برخه مدبر کړی أَوْ يُعْتِقَ یا آزاد کړی أَوْ يُكَاتِبَ یامکاتب کړی . أَوْ يُضَمِّنَ الْمُدَبِّرَ یا د مدبر کونکی نه تاوان واخلی أَوْ يَسْتَسْعِيَ الْعَبْدَ یا په غلام باندې مزدوری اوکړی أَوْ يَتْرُكَهُ عَلَى حَالِهِ یا هم په دې حال باندې پریږدی

**تشریح:-** دلیل دادې.چه مدبر کول د آزادولو یوه څانګه ده.نو په آزادولو به ددې قیاس هم کیږی .او هرکله چې د امام صاحب رحمه الله په نیز مدبر متجزی کیږی .نودا به صرف د مدبر کونکی برخې پورې محدود وی

اوچونکه مدبر کونکی د نورو دوي [دوه] شریکانو برخه خرابه کړې ده.نو په پاته دواړو شریکانو کي به هريو ته اختيار حاصل وی .که غواړي خپله برخه آزاده کړی .یا ئې مدبر کړی .یا ئې مکاتب کړی .یا د مدبر کونکی نه تاوان واخلی .یا په غلام باندې مزدوری کوی .یا ئې هم دې حال پرېږدی .

لِأَنَّ نَصِيبَهُ بَاقٍ عَلَى مِلْكِهِ خکه چې د هريو برخه دده په ملك باندې پاته ده فَاسِدٌ بِإِفْسَادِ شَرِيكِهِ (مگر) د شريك په فاسدولو سره ملك فاسد دی حَيْثُ سَدَّ عَلَيْهِ طُرُقَ الِانْتِفَاعِ بِهِ بَيْعًا وَهِبَةً خکه چې مدبر کونکی د بيع او هبه په طور د غلام نه فائده اخستل بند کړل عَلَى مَا مَرَّ لکه چې بيان شو فَإِذَا اخْتَارَ أَحَدُهُمَا الْعِتْقَ بيا هرکله چې په دې دواړوکي يو آزادول اختيار کړل تَعَيَّنَ حَقُّهُ فِيهِ نو په آزادونکی کي دده حق متعين شو وَسَقَطَ اخْتِيَارُهُ غَيْرَهُ او دده د علاوه اختيار ساقط شو

تشريح:- خکه چې د هر يو برخه دده په ملك کي پاته ده.خود شريك په خرابولو سره ملك فاسد دی.خکه چې مدبر کونکی د بيع او هبه په طور باندې فائده اخستل مسدود (بند) کړل.لکه چې په تيره شوې مسئله کي بيان شو.بيا کله چې د مدبر کونکی نه علاوه په نورو دوي [دوه] شريکانوکي يو کس دا غوره کړل.چه دا ئې آزاد کړلو.نوهم دا آزادول دده حق شو.او دده نور اختيارات (مثلاً سعايه، کتابت، او تضمين وغيره) ساقط شو.

فَتَوَجَّهَ لِلسَّاكِتِ سَبَبَا ضَمَانٍ نود ساکت لپاره د ضمان دوي [دوه] سببه پيدا شو تَدْبِيرُ الْمُدَبِّرِ .د مدبرکونکی مدبر کول وَإِعْتَاقُ هَذَا الْمُعْتِقِ او ددې آزادونکی آزادول غَيْرَ أَنَّ لَهُ أَنْ يُضَمِّنَ الْمُدَبِّرَ لِيَكُونَ الضَّمَانُ البته دده ته د مدبر کونکی نه د تاوان اخستلو اختيار دی ضَمَانَ مُعَاوَضَةٍ چې تاوان، تاوان معاوضه شی إِذْ هُوَ الْأَصْلُ خکه چې هم دا اصل دی حَتَّى جُعِلَ الْغَصْبُ ضَمَانَ مُعَاوَضَةٍ عَلَى أَصْلِنَا تردې چې زموږ په اصول باندې ضمان غصب هم ضمان معاوضه گرځولې شوې ده وَأَمْكَنَ ذَلِكَ فِي التَّدْبِيرِ او په مدبر کولوکي دا ممکن ده لِكَوْنِهِ قَابِلًا خکه چې مدبرغلام ددې قابل وی لِلنَّقْلِ مِنْ مِلْكٍ إِلَى مِلْكٍ چې د يو ملك نه بل ملك ته لاړشی وَقْتَ التَّدْبِيرِ د مدبر کاوه په وخت وَلَا يُمْكِنُ ذَلِكَ فِي الْإِعْتَاقِ او په آزادولو کي دا خبره ممکن نه ده لِأَنَّهُ عِنْدَ ذَلِكَ مُكَاتَبٌ .خکه چې دآزادولو په وخت داغلام مکاتب دی أَوْ حُرٌّ عَلَى اخْتِلَافِ الْأَصْلَيْنِ يا آزاد دی.،،علی اختلاف الاصلين،،

تشريح:- او دريم شريکوال کوم چې بالکل خاموش دی.دده لپاره د تاوان اخستلو دوي [دوه] سببونه پيدا شو.
①رومبی داچه د يوشريکوال مدبرکول② او دوهم داچه د دوهم شريك آزادول.خو خبره داده.چه ده ته د مدبر کونکی نه د ضمان اخستلو اختيار دی.اود آزادونکی نه د تاوان اخستلو اختيار نشته.چه دا ضمان معاوضه شی .خکه چې په ضمان کي ضمان معاوضه اصل دی.او ضمان معاوضه خکه اصل دی.چه ضمان ددې خبرې مقتضی دی.چه شئ مضمون د ضامن ملك شی .اودا خبره صرف په ضمان معاوضه کي کيدای شی .په ضمان جنايت،او په ضمان اتلاف کي نشی کېدی. اود مدبر کونکی نه چې کوم ضمان اخستلې شی .دا ضمان معاوضه وی .په دې وجه ساکت صرف د مدبر کونکی نه ضمان اخستلې شی .اوچونکه ضمان معاوضه اصل دی.په دې زموږ د قاعدې مطابق دچا مال غصب کولوتاوان هم تاوان معاوضه مقررکړې شوې دی.او داسې تاوان اخستل د مدبر کونکی نه ممکن هم دی.خکه چې مدبر غلام داسې غلام وی .چه د يوملك نه بل ملك ته منتقل کيږی .او په اعتاق کي دا خبره ممکن نه ده.خکه چې د آزادولوپه وخت دا غلام د امام ابوحنيفه رحمه الله په اصل باندې مکاتب شو.اود صاحبينو رحمهما الله په اصل باندې دا آزاد شو.

وَلَا بُدَّ مِنْ رِضَا الْمُكَاتَبِ بِفَسْخِهِ اود مکاتب عقد د فسخ کاوه لپاره دمکاتب رضامندی ضروری ده حَتَّى يَقْبَلَ الِانْتِقَالَ چې انتقال قبول کړی فَلِهَذَا نوهم په دې وجه ساکت يُضَمِّنُ الْمُدَبِّرَ د مدبرکونکی نه تاوان اخلی



تشريح:- بيا د عقدکتابت د فسخ کاوه لپاره د مکاتب رضامندی ضروری ده.چه دا قابل انتقال شی .نو معلومه شوه.چه د مدبرکونکی نه تاوان اخستل تاوان معاوضه وی .نو خاموش شريك به دده نه تاوان معاوضه اخلی .

ثُمَّ لِلْمُدَبِّرِ .بيا مدبر کونکی ته اختيار دی أَنْ يُضَمِّنَ الْمُعْتِقَ ثُلُثَ قِيمَتِهِ مُدَبَّرًا چې دآزادونکی نه د غلام دريمه برخه قيمت د مدبر په حساب سره وصول کړی لِأَنَّهُ أَفْسَدَ عَلَيْهِ نَصِيبَهُ مُدَبَّرًا خکه چې ده دده برخه د مدبر کيدلو په حالت کي خرابه کړې ده وَالضَّمَانُ يَتَقَدَّرُ بِقِيمَةِ الْمُتْلَفِ اود ضمان اندازه تلف شوی شی سره لگولې شی وَقِيمَةُ الْمُدَبَّرِ ثُلُثَا قِيمَتِهِ قِنًّا اود مدبر قيمت د خالص غلام د (دريو برخو) دوي [دوه] برخو د قيمت برابر دی عَلَى مَا قَالُوا لکه ځنگه چې مشائخو ونيلی دی .وَلَا يُضَمِّنُهُ قِيمَةَ مَا مَلَكَهُ بِالضَّمَانِ مِنْ جِهَةِ السَّاكِتِ او کوم قيمت چې ده لپاره ساکت شريك ته ورکول ضروری دی دی د آزادونکی نه واپس نشی اخستلې لِأَنَّ مِلْكَهُ يَثْبُتُ مُسْتَنِدًا خکه چې ساکت ته تاوان ور کاوه سره دده د برخې مالك د خپل مدبر کاوه په وخت گرځولی شوی وو. وَهُوَ ثَابِتٌ مِنْ وَجْهٍ اودا من وجه ثابت دی دُونَ وَجْهٍ .من وجه ثابت نه دی فَلَا يَظْهَرُ فِي حَقِّ التَّضْمِينِ نودا ملك به د ضامن کونکی په حق کي نه ښکاره کيږی

تشريح:- بيا مدبر کونکی ته اختيار دی.چه د آزادونکی نه د مدبر د قيمت په حساب سره د غلام دريمه برخه وصول کړی .خکه چې ده دده برخه د مدبرکيدلو خرابه کړې ده.اود ضمان اندازه هم په دې حساب سره کيږی .چه دکوم قيمت مال هلاك شوې وی .اود مدبر قيمت د خالص غلام د قيمت په دريوحصو کي د دوي [دوه] برخو برابر وی .يعنی د خالص غلام نه يوه برخه کم وی .لکه ځنگه چې مشائخوبيان کړی دی .اوکوم قيمت چې مدبر، ساکت شريك ته ورکړو.هغه دې د آزادونکی شريکوال نه واپس نشی اخستلې. خکه چې خاموش شريك ته ده کوم تاوان ورکړو.دا دده د مدبر کاوه دوخت نه مقررشوې وو.خودا ملکيت د تاوان ور کاوه په وجه ثابت دی.د اصلی حالت په وجه ثابت نه دی.نودا ملکيت ددې قابل نه دی.چه د آزادونکی نه ددې تاوان وصول کړی .په دې وجه ددې برخې تاوان نشی اخستلې.

وَالْوَلَاءُ بَيْنَ الْمُعْتِقِ وَالْمُدَبِّرِ أَثْلَاثًا ثُلُثَاهُ لِلْمُدَبِّرِ وَالثُّلُثُ لِلْمُعْتِقِ يعنی (د ريو حصو) دوي [دوه] برخې به مدبر کونکی او يوه برخه د آزادونکی وی لِأَنَّ الْعَبْدَ عَتَقَ عَلَى مِلْكِهِمَا عَلَى هَذَا الْمِقْدَارِ خکه چې غلام ددې دواړو په ملك باندې په دومره مقدار آزاد شوې دی وَإِذَا لَمْ يَكُنِ التَّدْبِيرُ مُتَجَزِّئًا عِنْدَهُمَا اوچونکه د صاحبينو رحمهما الله په نيز مدبر نه متجزی کيږی صَارَ كُلُّهُ مُدَبَّرًا لِلْمُدَبِّرِ نو پوره غلام به دمدبر کونکی لپاره مدبر وی وَقَدْ أَفْسَدَ نَصِيبَ شَرِيكَيْهِ او ده د خپلو دواړو شريکانو برخه خرابه کړله لِمَا بَيَّنَّا لکه چې بيان شو فَيُضَمِّنُهُ نو ددې دواړو دحصو ضامن به وی وَلَا يَخْتَلِفُ بِالْيَسَارِ وَالْإِعْسَارِ اودا ضمان د مالدارئ او فقيرئ په وجه نه مختلف کيږی لِأَنَّهُ ضَمَانُ تَمَلُّكٍ خکه چې دا ضمان خود ملك حاصلولو معاوضه ده فَأَشْبَهَ الِاسْتِيلَادَ نود استيلاد مشابه شو.

تشريح:- او په دې خالت کي به د غلام ولاء د آزادونکی اود مدبر په دواړو کي په دې طريقه مشترك وی .چه په درې حصوکي به دوي [دوه] برخې د مدبر کونکی وی .او يوه برخه به د آزادونکی وی .خکه چې د غلام آزادول ددې دواړو په ملکيت باندې هم په دې اندازه باندې واقع شوې دی.
اود صاحبينو رحمهما الله په اصل باندې تفريع داده.چه هرکله مدبر کول ددوی په نيز نه متجزی کيږی. نوکوم وخت چې مدبر کونکی مدبر کړو.نو پوره مدبر غلام دده مدبرشو.اوده د خپلو دواړو شريکانو برخه خرابه کړه.لکه ځنگه چې بيان شو.نو ددوی لپاره به ضامن وی .اودا ضمان به د مالدارئ او غريبئ په وجه نه مختلف کيږی .يعنی په دواړه حالتونوکي به ضامن وی .خکه چې دا ضمان خود ملك حاصلولومعاوضه ده.نود استيلاد مشابه شو.يعنی مثلاً په دوي [دوه] شريکانوکي يو شريك د مشترك وينځې د بچی دعوی اوکړه.نو دوهم کس ته به د وينځې د نصف قيمت ور کاوه ضامن وی.

بِخِلَافِ الْإِعْتَاقِ لِأَنَّهُ ضَمَانُ جِنَايَةٍ په خلاف دآزادونکي ،ځکه چې دا دیو جرم تاوان دي وَالْوَلَاءُ كُلُّهُ لِلْمُدَبِّرِ او ولاء، به پوره په پوره د مدبر کونکي لپاره وي .وَهٰذَا ظَاهِرٌ وداا مر ښکاره دي.

تشریح:- په خلاف د آزادولو،ځکه چې دا د یوجرم تاوان دي.او پاتې شوه ولاء، نودا به پوره ددې مدبر کونکي وی .اودا امر ښکاره دي.

## د شریکینو په یو بل باندې د وینځې د ام ولد دعوی

وَإِذَا كَانَتْ جَارِيَةٌ بَيْنَ رَجُلَيْنِ وکه یوه وینځه په دوي [دوه] سړوکي مشترك وی زَعَمَ أَحَدُهُمَا په دې دواړوکي یو دعوی اوکړله أَنَّهَا أُمُّ وَلَدٍ لِصَاحِبِهِ چې دا دده د شریك ام ولد ده وَأَنْكَرَ ذٰلِكَ الْآخَرُ او دوهم ددې انکار اوکړو فَهِيَ مَوْقُوفَةٌ يَوْمًا نو دوی دې یوه ورځ توقف اوکړی وَيَوْمًا تَخْدُمُ الْمُنْكِرَ او یوه ورځ دې د منکرشریك خدمت کوی عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ (دا) د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز دی

حل اللغة: ① السعایة:مزدوری ② المتحقق: یقینی ③استیلاد: ام ولده جوړول]

تشریح:- صورت د مسئلې دادې.چه یوه وینځه د دوې [دوه] سړو په مینځ کې مشترك وه.په دوی کې هر یوکس دا دعوی اوکړه.چه دا د دوهم کس ام ولد ده.او دوهم شریکوال ددې نه انکار اوکړو.نودا وینځه به خو یوه ورځ توقف کوی .یعنی د هیڅ یو کس خدمت به نه کوی .او په دویمه ورځ به د منکر شریك خدمت اوکړی .دا مذهب د امام ابوحنیفه رحمه الله دي.

وَقَالَا: إِنْ شَاءَ الْمُنْكِرُ او صاحبین رحمهما الله فرمائی .چه منکرشریك( ته اختیار دې) که غواړی اسْتَسْعَى الْجَارِيَةَ فِي نِصْفِ قِيمَتِهَا په وینځه دې ددې په نصف کې مزدوری اوکړی ثُمَّ تَكُونُ حُرَّةً بیا به دا آزاده وی لَا سَبِيلَ عَلَيْهَا په دې باندې هیڅ لارنشته

تشریح:- او صاحبین رحمهما الله فرمائی .که منکر اوغواړی .نو په دې وینځه دې مزدوری اوکړی .اونصف قیمت دې وصول کړی .نوکه وینځې مزدوری اوکړه.اوخپل نصف قیمت ئې منکر شریك ته اداکړو.نودا وینځه به آزاده شی .اود اقرار کونکی شریکوال په ده باندې هیڅ لاره نشته.یعنی مقر(اقرارکونکی) شریك ددې نه هیڅ نشی اخستلې.

لَهُمَا اود صاحبینو رحمهما الله دلیل دادې أَنَّهُ لَمَّا لَمْ يُصَدِّقْهُ صَاحِبُهُ چې کله د اقرارکونکی شریك دده دوهم اندیوالان تصدیق اونکړو انْقَلَبَ إِقْرَارُ الْمُقِرِّ عَلَيْهِ نود اقرارکونکی اقرار به پخپله په ده باندې واپس کیږی كَأَنَّهُ اسْتَوْلَدَهَا لکه چې ده دا وینځه ام ولدکړې وی فَصَارَ نودا داسې صورت شو كَمَا إِذَا أَقَرَّ الْمُشْتَرِي عَلَى الْبَائِعِ لکه چې مشتری په بائع باندې اقرار اوکړو أَنَّهُ أَعْتَقَ الْمَبِيعَ قَبْلَ الْبَيْعِ چې بائع د بیع نه وړاندې دا مبیع آزادکړې دي يُجْعَلُ كَأَنَّهُ دابه داسې ګڼړلې شی أَعْتَقَ لکه چې مشتری پخپله آزادکړې وی كَذَا هٰذَا هم داسې حکم به دلته کې هم وی . فَتَمْتَنِعُ الْخِدْمَةُ نو( د مقر دپاره)خدمت اخستل ممنوع دی وَنَصِيبُ الْمُنْكِرِ عَلَى مِلْكِهِ فِي الْحُكْمِ اود منکر برخه په حکم ظاهرکې دده په ملکیت کې پاته ده فَتُخْرَجُ إِلَى الْعَتَاقِ بِالسِّعَايَةِ نود آزادولو لپاره به د مزدورئ ذریعه راویستلې شی كَأُمِّ وَلَدِ النَّصْرَانِيِّ إِذَا أَسْلَمَتْ ..لکه د نصرانی ام ولد( په دې شرط) چې دا مسلمانه شوې وی

تشریح:- د صاحبینو رحمهما الله دلیل دادې.چه کله دوهم شریکوال، د اقرارکونکی شریکوال تصدیق اونکړو.نود اقرار کونکی اقرار پخپله په ده راواپس شو.لکه چې ده پخپله دا وینځه ام ولد جوړه کړې ده.نودا داسې صورت شو.لکه چې مشتری اقرار اوکړی .چه بائع د عقد بیع کاوه نه وړاندې دا مبیع (غلام) آزاد کړې دي.په داسې حال کې چې بائع ددې منکر وی .نو په دې صورت کې به دا غلام د مشتری د اړخه آزاد شی ځکه چې د بائع د انکار کاوه په وجه دمشتری اقرار پخپله په ده واپس کیږی .دغه ډول به دلته کې هم



کیږی .نوهرکله چې د مقر اقرار په ده راواپس شو.نو دده لپاره خدمت اخستل ممتنع شو.ځکه چې دا وینځه دده د خیال مطابق د دوهم شریك ام ولد ده.اود منکر برخه په ښکاره حکم کې دده په ملکیت کې پاته ده.نو د آزادیدلو لپاره به هم داسې کیږی .چه په وینځه به مزدوری کولې شی .لکه مثلاً که د نصرانی ام ولد مسلمانه شی .نو په دې به مزدوری کولې شی .یعنی په مسلمان ام ولد باندې د نصرانی ملك نه وی .بلکه دې ته به حکم ورکولې شی .چه قیمت اداکړی .او آزاده شی .

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادې أَنَّ الْمُقِرَّ لَوْ صَدَقَ که د مقر د قول تصدیق کولې شو كَانَتِ الْخِدْمَةُ كُلُّهَا لِلْمُنْكِرِ نود منکر شریك لپاره به ( دوینځې) پوره قیمت وو وَلَوْ كَذَبَ او هرکله چې دده تکذیب اوکړې شو كَانَ لَهُ نِصْفُ الْخِدْمَةِ نود منکر لپاره نیم قیمت شو فَيَثْبُتُ مَا هُوَ الْمُتَيَقَّنُ بِهِ نو کومه خبره چې یقینی ده وَهُوَ النِّصْفُ یعنی نصف قیمت هم دا به ثابت وی وَلَا خِدْمَةَ لِلشَّرِيكِ الشَّاهِدِ وَلَا اسْتِسْعَاءَ لِأَنَّهُ يَتَبَرَّأُ عَنْ جَمِيعِ ذٰلِكَ بِدَعْوَى الْاِسْتِيلَادِ اود شریکیدلو اود ضمان دعوی کاوه په وجه ددې ټولو نه بری دي

تشریح:- د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادې.چه اقرار کونکې شریك که په خپل اقرار کې رشتونې وو.نود منکرشریك لپاره به د وینځې پوره خدمت پاته وو.ځکه چې د اقرارکونکی په قول دا دده ام ولد ده.او که اقرار کونکې دروغژن اوګڼړلې شی .نود منکر شریك لپاره به نصف خدمت وی .ځکه چې دا وینځه په دواړو کې مشترکه ده.نو نصف خدمت کوم چې یقینی دې.د منکر شریکوال لپاره به ثابت وی .اود اقرار کونکی شریکوال لپاره به هیڅ خدمت نه وی .نودا وینځه به یوه ورځ دمنکر شریك خدمت کوی .او یوه ورځ به توقف کوی .یعنی د هیڅ یوکس خدمت به نه کوی .او اقرارکونکی شریکوال به په دې باندې د مزدورئ کاوه حقدار هم نه وی .ځکه هرکله چې ده په منکر شریکوال د ام ولد کیدلو،او په ده باندې د خپل تاوان واجب کاوه دعوی اوکړله.نود وینځې د خدمت،اود مزدورئ ټولو نه بری (خلاص) شو.

وَالْإِقْرَارُ بِأُمُومِيَّةِ الْوَلَدِ يَتَضَمَّنُ الْإِقْرَارَ بِالنَّسَبِ اود ام ولد کیدلو اقرار اقرار بالنسبت ته ګډ دي وَهُوَ أَمْرٌ لَازِمٌ اودا امر لازم دي لَا يَرْتَدُّ بِالرَّدِّ په رد کاوه سره نه رد کیږی فَلَا يُمْكِنُ أَنْ يُجْعَلَ الْمُقِرُّ كَالْمُسْتَوْلِدِ نودا ممکن نه ده.چه مقر د ام ولد جوړونکی پشان اوګرځولې شی .

تشریح:- په دې عبارت سره د صاحبینو رحمهما الله د قول ځواب ورکوی .حاصل د ځواب دادې.چه د ام ولد کیدلو اقرارد بچی د نسب اقرار ته ګډ دي.اودا اقرار یا نسب امر لازم دي.چه په رد کولوسره نه ردکیږی .نودا امکان پاته پاتې نشو.چه اقرار کونکې شریکوال ام ولد جوړونکې مقرر کړې شی .لکه څنګه چې صاحبینو رحمهما الله جوړکړې دي.

## د شریکنو د وینځې په بچی باندې د نسب دعوی کول

وَإِنْ كَانَتْ أُمُّ وَلَدٍ بَيْنَهُمَا اوکه ام ولد د دوې [دوه] سړو په مینځ کې مشترك وی فَأَعْتَقَهَا أَحَدُهُمَا بیا په دې دواړوکې یوکس دا آزاده کړله وَهُوَ مُوسِرٌ په داسې حال کې چې دا توانګر دي فَلَا ضَمَانَ عَلَيْهِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ نود امام ابوحنیفه په نیز به په ده باندې ضمان واجب نه وی .

حل اللغة: ① احراز: محفوظ کول ② المصاهرة: سخرکنۍ ③ التقويم: قیمت لګلول]

تشریح:- صورت د مسئلې دادې.چه یوه وینځه د دوې [دوه] سړو په مینځ کې مشترك وه.بیا ددې بچې پیدا شو. چې دواړو شریکانو په دې بچی باندې دعوی اوکړه.تردې چې د دواړو نه ئې نسب ثابت شو.اودا د دواړو ام ولد شوه.بیا یوکس دا آزاده کړله.په داسې حال کې چې دې مالداره هم دې. نود امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز به په ده باندې هیڅ تاوان واجب نه وی .

وَقَالَا: يَضْمَنُ نِصْفَ قِيمَتِهَا او صاحبین رحمهما الله فرمائی .دده د نیم قیمت ضامن به جوړولې شی لِأَنَّ مَالِيَّةَ أُمِّ الْوَلَدِ غَيْرُ مُتَقَوَّمَةٍ عِنْدَهُ ځکه چې د امام صاحب رحمه الله په نیز د ام ولد مالیت غیرمتقوم دي وَمُتَقَوَّمَةٌ عِنْدَهُمَا اود صاحبینو

په نيز متقوم دي. وَعَلَى هٰذَا الْأَصْلِ تُبْتَنَى عِدَّةٌ مِنَ الْمَسَائِلِ اوهم په دې اصل باندې يو څو مسئلې مبنى دی أَوْرَدْنَاهَا فِي كِفَايَةِ الْمُنْتَهَى چې دا مورِ په كفاية المنتهى كې ذكركړې دی

تشريح:- د صاحبينو په نيز به آزادونكۍ د ام ولد نصف قيمت خپل دوهم شريك ته وركوى. بنيادی اختلاف دادې.چه د امام ابوحنيفه په نيز ام ولد مال غيرمتقوم دې.اود صاحبينو په نيز مال متقوم دې.په دې اصل باندې ډيرې مسئلې جوړيږی .چه په ،،كفاية المنتهى ،،كې په تفصيل سره بيان كړې شوې دی .مثلاً كه په شريكينو كې يوكس مړ شو.نود امام صاحب په نيز باندې به ام ولد ، د دوهم شريك لپاره سعى نه كوى .اود صاحبينو په نيز به سعى كوى .

وَجْهُ قَوْلِهِمَا اود صاحبينو د قول وجه داده أَنَّهَا مُنْتَفَعٌ بِهَا چې د ام ولد نه نفع اخستل وَطْئًا وَإِجَارَةً وَاسْتِخْدَامًا ، د وطى او اجاره په طور او د خدمت په طريقه اخستل جائز دی وَهٰذَا هُوَ دَلَالَةُ التَّقَوُّمِ اودا متقوم كيدلو علامت دې

تشريح:- د صاحبينو د قول وجه داده.چه ام ولد ،،منتفع بها،، ده.چه د مولا لپاره خپلې ام ولد سره وطى كول جائزدی .دغه ډول په اجاره وركول جائز دی .او ددې نه خدمت اخستل هم جائز دی .اودا خبرې دملك يمين نه بغير نشى كيدلې.اوملك يمين د مال متقوم نه بغير ممكن نه دې.نو ثابته شوه.چه ام ولد مال متقوم دې.

وَبِامْتِنَاعِ بَيْعِهَا لَا يَسْقُطُ تَقَوُّمُهَا او ددې بيع ممتنع كيدلو سره ددې متقوم كيدل نه ساقطيږی كَمَا فِي الْمُدَبَّرِ لكه چې په مدبركې دی أَلَا تَرَى آيا ته نه ګورې أَنَّ أُمَّ وَلَدِ النَّصْرَانِي إِذَا أَسْلَمَتْ كه د نصرانى ام ولد مسلمانه شوه عَلَيْهَا السِّعَايَةُ نو په دې باندې سعايه واجب ده وَهٰذَا آيَةُ اودا علامت دې د متقوم كيدو أَنَّ قِيمَتَهَا ثُلُثُ قِيمَتِهَا قِنَّةً مګر داچه د ام ولدقيمت ( په نسبت) د خالصې وينځې دريمه برخه وى عَلَى مَا قَالُوا لكه چې مشائخو وئيلى دی لِفَوَاتِ مَنْفَعَةِ الْبَيْعِ وَالسِّعَايَةِ بعدالموت ځكه چې د خرڅولو اود مرګ نه روسته د مزدورۍ كاوه منفعت فوت شو

تشريح:- سره په دې عبارت سره د يو سوال ځواب وركوى .سوال دادې.چه د ام ولد بيع ممنوع ده.او ددې د بيع ممنوع كيدل د عدم تقوم دليل دې.نو معلومه شوه.چه ام ولد غيرمتقوم دې؟ ځواب دادې.چه د ام ولد د بيع ممنوع كيدلو نه ددې مال متقوم كيدل نه ساقطيږی .لكه څنګه چې د مدبر بيع ممنوع ده.حالانكه مدبر مال متقوم دې.لكه تاسو غور اوكړئ.چه د نصرانى ام ولد كه مسلمانه شوه.نو په دې باندې مزدورى كول،او قيمت اداكول بالاتفاق واجب دی .او په ام ولد باندې مزدورى واجب كيدل، ددې د متقوم كيدلو علامت دې.خو دومره خبره ضرور ده.چه د ام ولد قيمت د خالص وينځې د قيمت په دريوحصوكې ، د يوې برخې برابر دې.لكه څنګه چې مشائخو وئيلى دی .دليل دادې.چه ددې خرڅول،اود مرګ نه روسته دمزدورۍ منفعت فوت شوې دې.

بِخِلَافِ الْمُدَبَّرِ په خلاف د مدبر لِأَنَّ الْفَائِتَ مَنْفَعَةُ الْبَيْعِ ځكه چې ( دده نه) د بيع منفعت فوت شوې دې وى أَمَّا السِّعَايَةُ پاتې شوه مزدورى كول وَالِاسْتِخْدَامُ او خدمت اخستل فَبَاقِيَانِ نو دواړه پاته دی

تشريح:- په خلاف د مدبر،چه دده نه صرف د خرڅولو منفعت فوت شوې دې.پاتې شوه مزدورى كول،او خدمت اخستل.نودا دواړه پاته دی .نود مولادمرګ نه روسته دمولا د پور غوښتونكو لپاره به مزدورى كوى .اود مولا د مرګه پورې به دده خدمت هم كوى .

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ اود ابوحنيفه دليل دادې أَنَّ التَّقَوُّمَ بِالْإِحْرَازِ چې متقوم كيدل د احراز په وجه كيږی وَهِيَ مُحْرَزَةٌ لِلنَّسَبِ او ام ولد د نسب لپاره محرز وى لَا لِلتَّقَوُّمِ د تقوم لپاره ( محرز) نه وى وَالْإِحْرَازُ لِلتَّقَوُّمِ تَابِعٌ او تقوم د احراز تابع وَلِهٰذَا لَا تَسْعَى لِغَرِيمٍ وَلَا لِوَارِثٍ اوهم په دې وجه دا د يو قرضخواه يا وارث لپاره مزدورى نه كوى



تشريح:- دحضرت امام ابوحنيفه دليل دادې.چه قيمت د هغه شى لګولې شى چه د قبضه كې محفوظ كړې شى .حالانكه ام ولدصرف د نسب لپاره ساتلې شى.چه د مالدارئ لپاره خپله ساتلې.يعنى د مالدارئ لپاره ساتل مقصود نه وى .بلكه نسب مقصود وى .هم دا وجه ده.چه د مولا د مرګ نه روسته دا دهيڅ يو پور غوښتونكې يا وارث لپاره مزدورى نه كوى.

بِخِلَافِ الْمُدَبَّرِ په خلاف د مدبر وَهٰذَا لِأَنَّ السَّبَبَ فِيهَا مُتَحَقِّقٌ فِي الْحَالِ اودا ځكه چې سبب په ام ولد كې فى الحال متحقق دې وَهُوَ الْجُزْئِيَّةُ او هغه جزئيت دې الثَّابِتَةُ بِوَاسِطَةِ الْوَلَدِ چې د بچې لپاره ثابت دې عَلَى مَا عُرِفَ فِي حُرْمَةِ الْمُصَاهَرَةِ .لكه څنګه چې په حرمت مصاهرت كې معلوم شوى دی إِلَّا أَنَّهُ لَمْ يَظْهَرْ عَمَلُهُ فِي حَقِّ الْمِلْكِ ضَرُورَةَ الِانْتِفَاعِ مګر داچه د انتفاع په وجه د ملك په حق كې ددې عمل نه ښكاره كيږی فَعَمِلَ السَّبَبُ فِي إِسْقَاطِ التَّقَوُّمِ نود سبب اثر په تقوم ثابتيدلو كې دې وَفِي الْمُدَبَّرِ يَنْعَقِدُ السَّبَبُ بَعْدَ الْمَوْتِ او په مدبر كې د مرګ نه روسته سبب منعقد كيږی وَامْتِنَاعُ الْبَيْعِ فِيهِ اود مدبر بيع ممتنع كيدل لِتَحْقِيقِ مَقْصُودِهِ ددې د مقصود متحقق كيدلو په وجه دی فَافْتَرَقَا نو په دواړوكې توپير اوشو

تشريح:- په خلاف د مدبر، ځكه چې مدبر د نسب لپاره نشى ساتلې.بلكه د مالدارئ لپاره ساتلې شى .نو په مدبر،او ام ولد كې توپير دې. وجه د توپير داده.چه په ام ولد كې سبب فى الحال موجود وى .يعنى په مولا او ام ولدكې د جزئيت علاقه د بچى په واسطه ثابته ده.لكه څنګه چې د حرم مصاهرت په مسئله كې تير شوى دی .خو دومره خبره ضرور ده.چه ددې سبب (جزئيت) اثر د ملكيت زائل كيدلو په اړه كې نه دې ښكاره شوې.ځكه چې اوس هم د ام ولد نه مولا ته د نفع حاصلولو اړتيا دې.يعنى كه دا اوس په ملك كې پاتې نشى .بلكه آزاده شى .نوعلت به ختم شى .په دې وجه اوس د سبب هيڅ اثر نه دې شوې.خود قيمت اندازه ساقطولو كې د سبب اثر شوې دې.او په مدبر كې فى الحال سبب موجود نه دې.بلكه د مرګ نه روسته به پيدا كيږی .اود مدبر خرڅول په دې وجه ممتنع دی .چه د مدبر كاوه مقصود حاصل شى .نوپه ام ولد او مدبركې توپير ښكاره شو.

وَفِي أُمِّ وَلَدِ النَّصْرَانِي قَضَيْنَا بِتَكَاتُبِهَا عَلَيْهِ اود نصرانى په ام ولد كې مورِ د مكاتبه فيصله كړې ده. دَفْعًا لِلضَّرَرِ عَنِ الْجَانِبَيْنِ چې دواړو اړخ ته ضرر لرې شى وَبَدَلُ الْكِتَابَةِ لَا يَفْتَقِرُ وُجُوبُهُ إِلَى التَّقَوُّمِ اود بدل كتابت واجبيدل د تقوم محتاج نه دې.

تشريح:- او پاتې شوه د نصرانى د ام ولد مسئله، نو مورِ دا حكم وركړې دې.چه د نصرانى د اړخه دا مكاتبه شوه.يعنى په نصرانى باندې دا خبره لازمه شوه.چه په ام ولد او نصرانى دواړو باندې څه ضرر نه وى .او بدل كتابت ددې تقاضا نه كوى .چه دې دمال متقوم په مقابله كې شى .والله اعلم بالصواب. اللهم تقبله بفضلك يا ارحم الراحمين.

## باب عتق أحد العبدين

ژباړه:- [دا] باب په دوې [دوه] غلامانو كښې ديو د آزادولو[ په بيان كښې ] دې.

تشريح:- جعل هرهغه مال ته وئيلې شى .كوم چې دڅه كاركولو په عوض كښې مقرر كړې شى .چه مال په هرصورت كې وى .

### په دري غلامانوكې غيرمعين دوې [دوه] غلامان آزادول

وَمَنْ كَانَ لَهُ ثَلَاثَةُ أَعْبُدٍ د يوسړى درې غلامان [زيدعمروبكر] دی دَخَلَ عَلَيْهِ اثْنَانِ اتفاقا په دوى كې دوې [دوه] غلامان [زيد اوعمرو] ده ته حاضر شول فَقَالَ اوده [د تعين نه بغير] دا اووئيل أَحَدُكُمَا حُرٌّ چې په تاسو دواړو كې يو آزاد دې ثُمَّ خَرَجَ وَاحِدٌ بيا يو[زيد] دهغه خانې نه بهر شو وَدَخَلَ آخَرُ اوبل [بكر] داخل شو

فَقَالَ بيا مولا [دې دواړو ته] اوونيل أَحَدُكُمَا حُرٌّ په تاسو دواړوكي يو آزاد دې ثُمَّ مَاتَ بيا مولا مړ شو وَلَمْ يُبَيِّنْ او ده [په ښكاره] هيڅ بيان اونكړلو

تشريح:- دمولى درې غلامان دى .زيد،عمرو،بكر،دې په يومجلس كي ناست دې.چه زيداوعمرداخل شو.نومولى ورته اوونيل.په تاسودواړوكي يوآزاد دې.خوتعين ئې اونكړلو.چه څوك آزاد دې.ددې نه روسته عمراووتل.اوزيدپه مجلس كي پاته پاتې شو.په دې كي بكر را داخل شو.مولى بيا دې دواړو ته اوونيل.چه په تاسودواړه كي يوآزاد دې.اودكوم د آزادولوچه مولى اراده كړې وه.دهغې وضاحت ئې اونكړلو.بلكه ددې اعلان نه روسته وفات شو.اوكه وفات نشى .خوښخپله به بيان اوكړى .چه ما فلانې غلام آزاد كړې دې.

عِتْقَ الَّذِي أُعِيدَ عَلَيْهِ الْقَوْلُ ثَلَاثَةُ أَرْبَاعِهِ نو آزاديږى هغه غلام چې دوباره شوې وى پرې وينا [دآزادئ] درې حصې،[٧٥فيصد] وَنِصْفُ كُلِّ وَاحِدٍ مِنَ الْآخَرَيْنِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُمَا اللَّهُ اونصف برخه په پاته دوو كي د هريو[٥٠ فيصد] په نيز دامام ابوحنيفه اود ابويوسف رح قَالَ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللَّهُ كَذَلِكَ اوفرمائيلى دى محمد رح پشان ددې [چه د زيد اوعمرو نيمه برخه آزاديږى إِلَّا فِي الْعَبْدِ الْآخَرِ البته په دريم [بكر]كې [اختلاف كوى فَإِنَّهُ يَعْتِقُ رُبُعُهُ فرمائى چې دده څلورمه برخه [٢٥فيصد] آزاديږى .

تشريح:- اوس مسئله دا ده.چه دزيداوعمرنصف برخه په اول ځل آزاده شوې وه.اوپه دوهم ځل وينا باندې د زيد څلورمه برخه اود بكرنصف برخه آزا ده شوه.ځكه چې په اول مجلس كي پكاردا وه.چه په دې دواړوكي يوغلام آزاد شوې وو.خوچونكه دمولى داړخه بيان اونشو.نوموړ به ديوغلام د آزادئ اعلان په دې دواړو باندې ويش كړو.چه هريوته برابربرابرحصه ملاؤ شى .نود زيد نصف برخه آزاده شوه.اونصف باتې شوه.نوچه په دوهم مجلس كي مولى بيا دا اوونيل.چه په تاسودواړوكي دې يوآزاد وى .نواوس په دې صورت كي هم چونكه د مولى داړخه دآزادئ لپاره د يوتعين هم نشته.نونصف برخه د زيد او نصف برخه د بكرآزاديږى .

أَمَّا الْخَارِجُ كوم چې بهرته وتلې وى .[عمردده نصف آزاديږى ] فَلِأَنَّ الْإِيجَابَ الْأَوَّلَ دائر ځكه چې اول ايجاب [دمولى قول چې په تاسو دواړوكي يوآزاد دې] واقع شوې دې بَيْنَهُ وَبَيْنَ الثَّابِتِ په مينځ دده [عمر] او ثابت [زيد] كي وَهُوَ الَّذِي أُعِيدَ عَلَيْهِ الْقَوْلُ اوثابت هغه دې چې دوباره شوې دې پرې قول [د آزادئ فَأَوْجَبَ عِتْقَ رَقَبَةٍ بَيْنَهُمَا اوهركله چې مولى په غيرمعين طريقه يوغلام آزاد كړلو.] نوواقع شوه آزادى د يوغلام په مينځ ددواړوكي [چه زيد اوعمر لِاسْتِوَائِهِمَا د امله د برابرئ د دواړو نه [په استحقاق د حريت كي ] فَيُصِيبُ كُلًّا مِنْهُمَا النِّصْفُ نوحاصليږى به آزادى هريوكس ته په دوى دواړوكي نيمه [نيمه د زيد اونيمه د عمر

تشريح: د ترجمې څخه مطلب واضح دې

غَيْرَ أَنَّ الثَّابِتَ اسْتَفَادَ البته دا ده چې ثابت [زيد] حاصل كړلو بِالْإِيجَابِ الثَّانِي په دوهم ايجاب [دمولى په قول چې احدكما حر] باندې رُبُعًا آخَرَ نوره څلورمه حصه،[اوپه دې دوهم ايجاب كښې.ورته څلورمه برخه حاصله شوه.] لِأَنَّ الثَّانِي دائرځكه چې دوهم قول [احدكما حر] واقع شوې دې بَيْنَهُ وَبَيْنَ الدَّاخِلِ په مينځ دده [بكر] اوداخل [زيد] كي ،اودا داخل [بكر] هغه دې چې نامداركړې نې دې په كتاب [قدورى ] كي په آخر سره،[هركله چې د دوهم قول چې احدكما حرسره يوغلام آزاديدل.خوبيه كي هم د آزادئ لپاره متعين نه وو.] فَيَتَنَصَّفُ بَيْنَهُمَا نو نيمه به شى [دپوره غلام آزادى ] په مينځ ددې دواړوكي [چه زيداو بكر دې] وَهُوَ الَّذِي سَمَّاهُ فِي الْكِتَابِ آخِرًا .]] البته دومره ده چې ثابت [زيد] مستحق شوې دې د نيمې آزادئ په اولنى ايجاب [احدكما حر]سره

تسهيل: د ترجمې څخه مطلب واضح دې



غَيْرَ أَنَّ الثَّابِتَ اسْتَحَقَّ نِصْفَ الْحُرِّيَّةِ بِالْإِيجَابِ الْأَوَّلِ نوويش شوه نصف برخه كومه چې مستحقه شوې وه [د آزادئ] په دوهم ايجاب [احدكما حر] سره فِي نِصْفَيْهِ په دوو نصف برخو دده [زيد] كښې فَمَا أَصَابَ الْمُسْتَحَقَّ بِالْأَوَّلِ لَغَا نوهغه [څلورمه حصه] چې په مقابله كي راغله دهغه نصف برخې چې مستحق د آزادئ ګرځيدلې وه په اولنى ايجاب سره لغو شوه[ځكه چې هغه خود وړاندې نه آزاده شوې ده.نودهغې آزاديدو ته څه اړتيا پاتې نشو] وَمَا أَصَابَ الْفَارِغَ بَقِيَ اوهغه څلورمه برخه چې په مقابله كي راغله د پاتې شوې نصف برخې اولنى ايجاب كي د آزادئ نه پاتې شوې وه] هغه پاته پاتې شوه [چه څلورمه برخه ده] فَيَكُونُ لَهُ الرُّبُعُ نوشوه دده [زيد] لپاره [په دوهم ايجاب كي ] څلورمه برخه [د آزادئ٭ .هركله چې نصف يعنى دوې [دوه] برخې ئې په اولنى ايجاب كي آزادې شوې وې.اويوه ربع يعنى څلورمه برخه ئې په د ويم ايجاب كي آزاده شوه.] فَتَمَّتْ لَهُ ثَلَاثَةُ الْأَرْبَاعِ نو پوره شوې دده لپاره درې برخې [اوصرف يوه برخه ئې غلامه پاتې شوه.يعنى زيد يوپاؤ كم واړه آزاد شوپه نورو الفاظوكي د زيد ٧٥فيصد برخه آزاده شوه.او٢٥فيصد غلامه ده

تشريح:- «غيرانه الثابت» خوچونكه د زيد خو اولنى مجلس كي نصف برخه ازاده شوې وه.اونصف برخه پاتې وه.نود زيد كومه نصف برخه چې په غلامئ كي پاتې وه.په دې دوهم مجلس كي به ددې پاته نصف آزاده شى .چه څلورمه برخه ده.اود آزاد شوې نصف برخې په مقابله كښې چې كومه څلورمه برخه راغله.هغه باطله شوه.ځكه هغه خود وړاندې نه آزاده شوې ده.نواوس داولنى مجلس نصف اود دوهم مجلس څلورمه برخه چې دواړه جمع كړې شى .نودرې حصې د زيد اونصف د عمراونصف د بكر آزادې شوې.خودا د شيخينو» مذهب دې.

وَلِأَنَّهُ ددې دليل [چه په اول ايجاب سره نصف اوپه دوهم باندې ربع آزاديږى ] دا دې لَوْ أُرِيدَ هُوَ بِالثَّانِي كه اراده كړې وى ده [مولى ] په دوهم [ايجاب سره] دا غلام [زيد] نوآزاديږى نصف دده كوم چې د اولنى ايجاب نه پاتې شوې وو يَعْتِقُ نِصْفُهُ اودغه ډول به زيد واړه آزاد شى ] وَلَوْ أُرِيدَ بِهِ الدَّاخِلُ اوكه اراده كړې وى ده[مولى ] په دې [ دوهم ايجاب سره] داخليدونكې غلام [بكر] لَا يَعْتِقُ هَذَا النِّصْفُ نو نه آزاديږى ددې غلام [زيد] نصف برخه ،[نوكه په دوهم ايجاب سره زيد اراده كړې شى .نودې خوبه واړه آزاد شى .خودده انډيوال بكر غلام پاتې كيږى .حالانكه دا دواړه د آزادئ په استحقاق كي برابر دي .ځكه چې د آزادئ وينا دواړو ته په شريكه شوې ده.نوهركله چې دا خبره صحيح نه ده.چه زيد دې واړه آزاد شى .او بكر دې هم هغه شان غلام پاته پاتې شى .] فَيَتَنَصَّفُ نو آزادى به نصف كولاى شى فَيَعْتِقُ مِنْهُ الرُّبُعُ بِالثَّانِي نصف آزادى به د زيدپه برخه كي راشى وَالنِّصْفُ بِالْأَوَّلِ او نصف به د بكر په برخه كي ]

تشريح:- د ترجمې څخه مطلب واضح دې

وَأَمَّا الدَّاخِلُ اوهرچه داخل [بكر]دې فَمُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللَّهُ يَقُولُ نومحمد رح فرمائى لَمَّا دَارَ الْإِيجَابُ الثَّانِي چې هركله واقع شو ايجاب دوهم بَيْنَهُ وَبَيْنَ الثَّابِتِ په مينځ دده [بكر] او ثابت [زيد] كي وَقَدْ أَصَابَ الثَّابِتَ مِنْهُ الرُّبُعُ اويقيناً اورسيدلو ده ثابت [زيد] ته ددې آزادئ نه څلورمه برخه [په دوهم ايجاب سره] فَكَذَلِكَ يُصِيبُ الدَّاخِلَ نودغه ډول به رسيږى داخل[بكر] ته [څلورمه برخه اودبكربه هم څلورمه برخه آزاديږى اودرې برخې به ئې غلامې وى ]

حل اللغة: ① قضية: تقاضا ② التنصيف: نيم كول ]

تشريح:- دامام محمد رح دليل دا دې.چه د مولى په دوهم قول باندې يوغلام آزاد شو.نودا يوغلام به په دواړوحاضرينويعنى عمراوبكرباندې پوره پوره تقسيمولې شى .خوپه دې دوهم مجلس كي زيد ته د آزادئ څلورمه برخه ملاويږى .نوچه څومره برخه ده ته ملاويږى .هم هغه هومره به بكرته هم ملاويږى .چه څلورمه

برخه ازادي ده.داسې نه ده.چه زيد ته خودې په دوهم مجلس کې څلورمه برخه ازادي ملاؤ شی .اوبکرته دې نصف، دا دکوم خانې انصاف دې.

وَهُمَا يَقُوْلَانِ اوشيخين رح فرمائی إِنَّهُ دَائِرٌ بَيْنَهُمَا چې دا دوهم ايجاب واقع شوې دې په مينځ د دواړو[زيداوبكر] کې وَقَضِيَّتُهُ التَّنْصِيفُ اوتقاضا ددې [دوهم ايجاب] نيم نيم كول دی ځکه چې د آزادۍ لپاره يوهم متعين نه دې[.نويوه آزادي به په دواړو تقسيمه شی .اوهريوته به نيمه نيمه اورسی ] وَإِنَّمَا انْزَلَ إِلَى الرُّبُعِ البته دا ده چې راكوزه شوه آزادي [دنصف نه] څلورمې برخې ته فِي حَقِّ الثَّابِتِ په حق د ثابت [زيد] کې لِاسْتِحْقَاقِهِ النِّصْفَ بِالْإِيجَابِ الْأَوَّلِ ځكه چې دې مستحق ګرځيدلې وود نصف برخې په اولنی ايجاب سره كَمَا ذَكَرْنَا لکه څنګه چې موږ ذکرکړلو وَلَا اسْتِحْقَاقَ لِلدَّاخِلِ مِنْ قَبْلُ اونشته استحقاق [د آزادۍ]د داخل [بكر] لپاره وړاندې ددې [دوهم ايجاب نه فَيَثْبُتُ فِيهِ النِّصْفُ نوثابت به پاتې شی په ده [بكر]کې نصف آزادي .

اوشيخين داامام محمد رح د دليل نه ځواب كوی .چه موږ هم دا منو.چه په دوهم مجلس کې پكارده چې نصف برخه د زيدآزاده شی .اونصف د بکر.خوچه كله موږ د زيد دحصې نصف دوې [دوه] ځايه كړله.نود هغه د يونصف برخې په مقابله کې څلورمه برخه يوراتله.اود بلې نصف برخې په مقابله کې څلورمه برخه بله راتله.نودهغه چې كومه نصف برخه غلامه وه.دهغې په مقابله کې چې كومه څلورمه برخه راغله.هغه آزاده شوه.اود زيد د آزادې نصف په مقابله کې چې كومه څلورمه برخه راغله.نوچونكه هغه د وړاندې نه آزاده شوې وه.نودا څلورمه برخه آزادي باطله شوه.

## په مرض الموت کې د ذکرشوې صورت حکم

قَالَ بيا امام محمد رح [په جامع صغير كنبې] فرمائی فَإِنْ كَانَ الْقَوْلُ مِنْهُ فِي الْمَرَضِ قُسِمَ الثُّلُثُ که وی دا قول د مولی په مرض کې نوتقسيمولې به شی دريمه برخه [دمال د مړی نه چې دا غلامان دی ] عَلَى هَذَا په دې ترتيب باندې وَشَرْحُ ذَلِكَ اووضاحت ددې دا دې أَنْ يُجْمَعَ بَيْنَ سِهَامِ الْعِتْقِ چې جمع به كړې شی په مينځ د حصود آزادۍ کې وَهِيَ سَبْعَةٌ عَلَى قَوْلِهِمَا اوهغه اووه دی په قول د شيخينو رح لِأَنَّا نَجْعَلُ كُلَّ رَقَبَةٍ عَلَى أَرْبَعَةٍ ځكه چې موږ ګرځوو[ويش كوو] هرغلام په څلورو حصو باندې لِحَاجَتِنَا إِلَى ثَلَاثَةِ الْأَرْبَاعِ د املـه دحاجت زموږ دري څلورمو برخو ته،[۲۵+۲۵+۲۵ =۷۵ فيصد] فَنَقُولُ: يَعْتِقُ مِنَ الثَّابِتِ ثَلَاثَةُ أَسْهُمٍ نوموږ وايو چې آزاديږي د ثابت [زيد] نه دري برخې [۷۵فيصد]) وَمِنَ الْآخَرَيْنِ مِنْ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا سَهْمَانِ اوپه پاته دوو غلامانو[عمرويكر] كې دهريونه دوې [دوه] دوې [دوه] برخې [۲۵+۲۵= ۵۰ د عمرواو ۲۵+۲۵= ۵۰ فيصدد بكر] فَيَبْلُغُ سِهَامُ الْعِتْقِ سَبْعَةً نورسيږي برخې دآزادۍ اووو ته [چه د فيصدۍ په حساب تري [۱۷۵] برخې جوړيږي ]

حل اللغة: ① سهام جمع د سهم، برخه

تشريح:- مسئله هم هغه ده.كومه چې په وړاندينی متن کې تيره شوه.البته په وړاندينی صورت کې د مرض الوفات حالت نه وو.اوپه دې دوهم صورت کې بيمار دې.په لومړنی مسئله كه موږ نظرواچوو.نوهلته د زيد دري برخې اود عمرواوبكرنصف نصف آزاد شوې وو.چه موږ دغه ټولې برخې راجع کړو.نودهغې نه اووه برخې جوړيږي .يعنی دري دزيد ،دوې [دوه] د عمرو، اودوې [دوه] دبكر،هم دا ترتيب په دې مسئله کې دې.

وَالْعِتْقُ فِي مَرَضِ الْمَوْتِ وَصِيَّةٌ اوعتق په مرض الوفات کې وصيت وی [يعنی د وصيت په حکم کې وی ] وَمَحَلُّ نَفَاذِهَا الثُّلُثُ اومحل د نافذ كولوددې [وصيت نه] دريمه برخه [د تركه ]ده فَلَا بُدَّ أَنْ يُجْعَلَ سِهَامُ الْوَرَثَةِ ضِعْفَ ذَلِكَ نومخلص نشته چې اوګرځولې شی برخې د وارثانو دوچنده د دې [وصيت]

تشريح:- ددې عبارت مقصد دا دې.چه مسئله هم هغه ده.كومه چې وړاندينی متن کې تيره شوې ده.نوبيا ولې



موږ دعتق ويش ته محتاج شو.نوداحتياج وجه دا ده.چه په مرض الوفات کې د غلامانوازادول پشان د وصيت دې.يعنی دا داسې شوه.چه مولی د غلامانو لپاره د آزادۍ وصيت كوی .اوپه مرض الوفات کې د وصيت كولوحكم دا دې.چه واړه مال په دري برخو تقسيمولې شی .نوپه يوه برخه کې به دمړی وصيت پوره كولې شی .اوپاته دوې [دوه] برخې به د وارثانو وی . بالفرض كه وصيت د دريمې برخې نه زيات وی .نوهغه زياتی به نشی پوره كولې.ځكه چې په دې کې دوارثانوحق وهلې شی .

فَيُجْعَلُ كُلُّ رَقَبَةٍ عَلَى سَبْعَةٍ نواوبه ګرځولې شی [ويش به كړې شی ] هريوغلام په اووه برخو باندې [په هغه صورت کې چې دمړی په تركه کې صرف دا دري غلامان وی .بل څه نه وی وَجَمِيعُ الْمَالِ أَحَدٌ وَعِشْرُونَ اوپه دې حساب سره] واړه مال [چه دري غلامان دی ] يوويشت برخې شوې ....[۷ لره چې په ۳ کې ضرب وركړې نو ۲۱ برخې شوې] فَيَعْتِقُ مِنَ الثَّابِتِ ثَلَاثَةٌ نود ثابت [زيد] څخه به دري برخې آزادې شی وَيَسْعَى فِي أَرْبَعَةٍ [مثلاً په اووه سوو کې دري سوه] اومحنت به كوی په [آزادولود] د څلوروحصو کې [چه څلورسوه روپۍ دی ] وَيَعْتِقُ مِنَ الْبَاقِيَيْنِ مِنْ كُلِّ مِنْهُمَا سَهْمَانِ [۲] .اوآزاد به شی په باقيوکې ددې دواړو غلامانو نه دوې [دوه] دوې [دوه] برخې [په اووه سووکې دوې [دوه] سوه د عمرواودوې [دوه] سوه د بكر] وَيَسْعَى فِي خَمْسَةٍ اومحنت به كوی [هريوكه عمرو دې اوكه بكردې] په آزادولود پنځو حصوکې [چه پنځه پنځه سوه روپۍ دی ] فَإِذَا تَأَمَّلْتَ نوهركله چې ته سوچ اوكړې وَجَمَعْتَ اوجمع كړې اسْتَقَامَ الثُّلُثُ وَالثُّلُثَانِ دا نوپوره شو يوثلث [د وصيت دپاره] اودوې [دوه] ثلثه [د وارثانو لپاره دا تفصيل خود شيخينو رح په نيز وو.چه دوی په مسئله کې دبكر د نيمې برخې يعنی ۵۰فيصد آزادۍ قائل دی ] وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللَّهُ يُجْعَلُ كُلُّ رَقَبَةٍ عَلَى سِتَّةٍ اوپه نيزد محمد رح اوبه ګرځولې شی [ويش به كړې شی ] هريوغلام په شپږو حصوباندې لِأَنَّهُ يَعْتِقُ مِنَ الدَّاخِلِ عِنْدَهُ سَهْمٌ فَنَقَصَتْ سِهَامُ الْعِتْقِ بِسَهْمٍ ځكه چې آزاديږي د داخل [بكر] نه د دوی په نيزيوه برخه [۲۵فيصد ،نوپه دې حساب دري حصې۷۵فيصد د زيد اودوې [دوه] برخې ۵۰ فيصد د عمرو اويوه برخه ۲۵فيصد د بكرآزادې شوې چې ټولې تري شپږ برخې جوړې شوې.اوس د وصيت مسئلې ته راشه چې واړه مال هم دا دري غلامان دی .نودا به په دري برخو ويش كړې شی .دوې [دوه] برخې د وارثانو اويوه برخه د وصيت شوه.چه شپږو ته په دريوکې ضرب وركړې.] وَصَارَ جَمِيعُ الْمَالِ ثَمَانِيَةَ عَشَرَ نواوګرځيدو واړه مال اتلس برخې وَبَاقِي التَّخْرِيجِ مَا مَرَّ اوپاته ويش هغه شان دې كوم چې تير شو.(يعنی په دې کې څوارلس د وارثانو شوې اوشپږ برخې د وصيت لپاره شوې.[نوپه کې دري برخې اود عمرودوې [دوه] برخې اود بكريوه برخه آزاده شوه.چه ددې د مجموعه نه شپږ جوړيږي ]

تشريح:- هركله چې مسئله وصيت ته اووتله.اوبل اړخ ته د مولی تركه صرف دا دري غلامان دی .نواوس چې موږ هرغلام په څلورحصو ويش كړلو.نودولس برخې شوې.اوپه دولسوکې اووه برخې آزادې شوې دی .نوپنځه برخې پاتې شوې.حالانكه پكاردا ده.چه وارثانوته څلور ۴ برخې ملاؤ شوې وې.نواوس به موږ داسې اوكړو.چه هرغلام به په اووه ويش كړو. او دري غلامان دی .نوټولې برخې يوويشت شوې.نوچونكه يوغلام موږ په اووه برخو ويش كړې وو.نود زيدبه دري برخې آزادې شی .اود څلورو په آزادولوکې به سعی كوی .اوبه عمرواوبكرکې به د هريودوې [دوه] دوې [دوه] برخې آزادې شی .اودپنځوپه آزادولوکې به كوښښ كوی.

## په باب دطلاق کې د ذکرشوې صورت حکم

وَلَوْ كَانَ هَذَا فِي الطَّلَاقِ اوكه دا صورت د طلاق په اړه کې وی وَهُنَّ غَيْرُ مَدْخُولَاتٍ اودا ښځې ددې [قائل] غير مدخوله وی وَمَاتَ الزَّوْجُ قَبْلَ الْبَيَانِ او خاوند وفات شو وړاندې د خپل بيان نه

تشريح:- صورت دمسئلې دا دې.كه د زيد دري ښځې عائشه فاطمه او زينب دی .اودري واړه غيرمدخول بها دی .نومسئله دا ده.كه غيرمدخول بها ته قبل الوطی طلاق وركړې شی .دهغې لپاره نصف مهردې.نوپه دوی کې ورسره عائشه اوفاطمه موجود وې.اوده ورته بغيرد تعين نه اووئيل.چه په تاسوکې دې يوه طلاقه وی

.ددې نه روسته فاطمه اووتله.اوزينب راغله.ده دوباره اووئيل.چه په تاسوکي دې يوه طلاقه وی .اوددې نه روسته زيدوفات شو.

سَقَطَ مِنْ مَهْرِ الْخَارِجَةِ رُبُعُهُ نوساقط شو دمهردخارجه [فاطمه] نه څلورمه برخه

تشريح:- په مذکورالصدرصورت کي دخارجې (فاطمې) د مهرڅلورمه برخه ساقطيږی . او په څلورو برخو کي به درې برخې په خاوند باندې واجب الاداء وی .

د خارجې [فاطمه]دمهرنه څلورمه برخه څکه ساقطيږی .چه مثلاً په درې واړوکي د هرې يوې مهرڅلور سوه روپئ وو.نونيم مهرچه دوې [دوه] سوه روپئ دی .دطلاق قبل الدخول په وجه ساقط شو.پاتې شو نيم مهرچه دوې [دوه] سوه روپئ دی .اوس چونکه د طلاق مخاطبې دوې [دوه] ښځې دی .اويوه هم په کي د طلاق لپاره متعينه نه ده.څکه چې خاوند د مطلقې بيان نه دې کړې.نواوس به دغه دوې [دوه] سوه روپئ په دې دواړوتقسيمولې شی .نوخارجه چې فاطمه ده.ددې د مهرنه مطلقه معلومه نه ده.چه عائشه ده که فاطمه نونيم به په دې دواړو باندې ويش شی .نوخارجه چې فاطمه ده ددې د کل مهر چې څلور سوه روپئ دی .دې څخه به څلورمه برخه ختمه شی .

وَمِنْ مَهْرِ الثَّابِتَةِ ثَلَاثَةُ أَثْمَانِهِ اود مهرد ثابتې [عائشې] نه په اته برخو کي درې برخې وَمِنْ مَهْرِ الدَّاخِلَةِ ثُمُنُهُ اود مهر د داخلې [زينب] اتمه برخه قِيلَ هَذَا قَوْلُ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللَّهُ خَاصَّةً وئيلی شوی دی چې دا [د زينب په حق کي تقسيم]دمحمد رح قول دې وَعِنْدَهُمَا يَسْقُطُ رُبُعُهُ اوپه نيزد شيخينو رح به ساقط شی څلورمه برخه مهر، وَقِيلَ هُوَ قَوْلُهُمَا أَيْضًا اووئيلی شوی دی چې دا [دزينب حصه] د شيخينو رح قول هم دې

تشريح:- او ثابته چې عائشه ده.ددې د مهرد اتمې برخې څخه به درې برخې ساقطې شی .مثلاً لکه مونږ چې واړه مهرڅلور سوه روپئ مقرر کړې دې.اودا په اته حصوباندې ويش کړو.نود اته برخو دوې [دوه] برخې خود اولنی خل په طلاق سره دعائشې دمهرنه ساقطې شوې.اوچه په دوهم خل خاوند بيا طلاق واقع کړلو.نود وړاندينی صورت پشان دلته هم د طلاق قبل الدخول په وجه نصف مهرساقط شو.چه دوې [دوه] سوه روپئ دی .نوپه دې طلاق کي ورسره د فاطمه په ځائې زينب په مجلس کي شريکه ده.نودغه ساقط شوې نيم مهربه په دې دواړوعائشې او فاطمې باندې ويش شی .اودهرې يوې دمهرنه به څلورمه څلورمه برخه چې سل روپئ دی .ساقطې شی .خودومره ده چې داولنی مجلس په طلاق سره هم د عائشې دمهرنه څلورمه برخه چې سل روپئ دی ساقطې شوې وې.حالانکه پکاردا وو.که دا مطلقه وه.چه نيم مهرساقط شوې وو.خوچونکه فاطمه ورسره په دې مجلس کي شريکه وه.نوځکه ددې د مهرنه د نيمې په ځائې څلورمه برخه ساقطه شوه.اودا ځکه چې په طلاق قبل الدخول کي ثمن (اتمه حصه) پشان د ربع (څلورمې حصه) ده.په عتاق کښې،ځکه چې په دې باندې نيم مهر ساقطيږی .اوثمن نصف (نيمه حصه) څلورمه برخه ده.نوپه دا په شيخينو[رح] باندې يو ډول تعريض دې.نوصاحب دهدايه [رح] په خواب کي فرمائی .چه «قيل هـذا قـول محمـد[رح] » نودا په شيخينو[رح] باندې جحت نشی جوړيدې.ځکه چې د دوی په نيزڅلورمه برخه ساقطيږی .اوچا وئيلی دی .چه د شيخينو[رح] مسلك هم دا دې.نود طلاق اوعتاق په مينځ کي ضرور توپير شته.ددې امله شارح اوفرمائيل چه «وقد ذكرنا الفرق إلخ»

وَقَدْ ذَكَرْنَا الْفَرْقَ وَتَمَامَ تَفْرِيعَاتِهَا فِي الزِّيَادَاتِ اويقيناً مونږ ذکرکړې دې توپير اوپوره تفريعات [ددې مسئلې] په کتاب الزيادات کي

تشريح:- د عتق او طلاق په مسئله کي توپير دا دې.دعتاق په مسئله کي چې کوم غلام ثابت وی .هغه د مکاتب پشان دې.ځکه چې کله مولی په مبهمه طريقه د آزادئ قول اوکړلو.نوده ته د ابهام لرې کولواختياروو.چه په دواړوکي دکوم غلام دآزادئ اراده ده کړې وه.نوترڅوپورې چې مولی ته د بيان حق



حاصل وی .ترهغه وخته پورې په دواړوغلامانوکي هريوپه يوحيثيت سره ازاد دې اوپه يوحيثيت سره غلام دې.ځکه چې مولی ته د بيان اختيارحاصل دې.نودکوم کس د آزادئ بيان چې اوکړی .هغه به آزاد شی اوبل به غلام پاتې شی .خوچه بيان اونشو.نوپه اولنی مجلس کي چونکه د عتاق محل مبهم دې.اومخاطبين دوې [دوه] غلامان دی .نوديوغلام آزادی به په دواړوغلامانوويش شی .نيم به يوآزاد شی .چه ثابت دې.اونيم به بل چې خارج دې.اوچه نيم آزاد شو.نودې دمکاتب پشان شو.اوس په دوهم قول کي دمولی قول ثابت چې دمکاتب پشان دې اوداخل ته متوجه شو.نودا دوهم قول د دواړوپه حق کي صحيح شو.ځکه چې ثابت دمکاتب پشان دې.نوپه دوهم قول کي ديوغلام آزادی په دووويش شوه.چه ثابت اوداخل دې.نود داخل نصف آزاد شو.اودثابت په برخه کي چې کومه نصف برخه آزادی راغلې ده.هغه به په دوو حصوويش کړې شی .يعنی يوه ربع به د يونصف غلامئ په مقابله کي شی .اوبله ربع به د بلې نصف غلامئ په مقابله کي شی .نواولنې نصف خوچونکه په اولنی قول سره آزاد شوې دې.نوپه دوهم قول کي دغه ربع فضول شوه.ځکه چې محل ئې نشته.اودويمه ربع آزادی به ثابت ته حاصله شی .نوپه دې طريقه د ثابت دريمه برخه اود داخل نيمه برخه آزاده شوه.اود طلاق په مسئله کي چې کومه ثابته ده.ددې په اړه کي شك دې.چه دا منکوحه ده اوکه اجنبيه.ځکه که د طلاق په اولنی قول کي خارجه طلاقه شوې وی .نود دوهم قول په وخت کي دا منکوحه ده.اود طلاق دا دوهم قول صحيح شو.اوکه په اولنی قول باندې ثابته طلاقه شوې وی .نوثابتې په حق کي دوهم قول لغو دې.ځکه چې مطلقه خود آزاد شوی پشان نشی کيدې.چه نيمه دې مطلقه شی اونيمه دې منکوحه شی .نودلته د طلاق په مسئله کي هم ثابته په يوحيثيت سره اجنبيه ده.که په اولنی قول سره طلاقه شوې وی .اوپه يوحيثيت سره منکوحه ده.که په اولنی قول سره نه وی طلاقه شوې.نودنيم مهرنيمه برخه به ساقطه شی .کومه چې ربع ده.اوبيا به دغه ربع د داخلې اوثابتې دواړو په مهرونوباندې ويش کړې شی .نودهرې يوې دحصې څخه به ربع ساقطه شی .

«وتمام تفريعاتها» لکه دميراث په مسئله کي که د ښځې اولاد نه وی .نودا د خاوند په ميراث کي څلورمه برخه اوړی .اوس دغه برخه به د ثابتې اوخارجې په مينځ کي په نيمه نيمه تقسيميږی .مثلاً د خاوند په ميراث کي ربع اته زره روپئ دی .نوپه دغه اتو زرو کي به دوې [دوه] زره روپئ د ثابتې شی اودوې [دوه] زره به د خارجې شی .ځکه چې دواړه برابردی .دواړو ته طلاق متوجه شوې دې.اوپه پاته نصف کي چې څلور زره روپئ دی .په هغې کي به دوې [دوه] زره روپئ د ثابتې اودوې [دوه] زره روپئ د داخلې شی .ځکه چې دا دوهم طلاق ثابتې اوداخلې ته متوجه شوې دې.نوميراث به هم دواړو ته برابرورکولې شی .

**په دووغلامانوکي بغيرد تعين نه يوآزادول**

وَمَنْ قَالَ لِعَبْدَيْهِ أَحَدُكُمَا حُرٌّ اوڅوك چې ووايي خپلو دوو غلامانو[زيد اوعمرو] ته يوپه تاسودواړوکي آزاد دې.[اوچه دا قول ئې اوکړلو.] فَبَاعَ أَحَدَهُمَا نو[ددې نه پس] خرڅ ئې کړلو يو[زيد] په دغه دواړوکي أَوْ مَاتَ اويا مړشو[په کي يومثلاً يد]. أَوْ قَالَ لَهُ أَنْتَ حُرٌّ بَعْدَ مَوْتِي ويا ئې اووئيل ده [زيد] ته [سره ددې نه چې په اولنی قول کي دا زيدهم مخاطب وو] چې ته آزاد ئې روسته د مرګ زما نه عَتَقَ الْآخَرُ نوپه دې درې واړه صورتونوکي ] آزاديږی دغه بل [چه عمرودې] لِأَنَّهُ لَمْ يَبْقَ مَحَلًّا لِلْعِتْقِ أَصْلًا بِالْمَوْتِ ،[ ځکه چې پاته پاتې نشو محل د آزادئ لپاره بيخی په مرګ سره [ځکه چې په مرګ سره د آزادئ محل فوت شو.نوآزادی ټوله دوهم يعنی عمروته حاصله شوه.] وَلِلْعِتْقِ مِنْ جِهَتِهِ بِالْبَيْعِ او[محل پاتې نشو] آزادئ لپاره د امله د خرڅولو دده [مولی ] نه وَلِلْعِتْقِ مِنْ كُلِّ وَجْهٍ بِالتَّدْبِيرِ فَتَعَيَّنَ لَهُ الْآخَرُ او[دغه ډول محل پاتې نشو] د آزادئ لپاره په هرحيثيت په مدبرجوړولو سره) وَلِأَنَّهُ بِالْبَيْعِ قَصَدَ الْوُصُولَ إِلَى الثَّمَنِ وَبِالتَّدْبِيرِ إِبْقَاءَ الِانْتِفَاعِ إِلَى مَوْتِهِ، وَالْمَقْصُودَانِ يُنَافِيَانِ الْعِتْقَ الْمُلْتَزَمَ [ځکه چې د مدبرجوړولو نه روسته آزادولې نشی .اوترمرګه پورې ترې فائده اخستل

غواړي .نود ازادئ لپاره محل پاتې نشو] چې مولی په خرڅولو کي قصد کړې وو دحاصلولود مال اوپه مدبر کاوه سره [ده قصد کړې وو] پاته پاتي کول د فائدې اخستلو ترخپل مرګه پورې، اودا دواړه مقصوده [كه دمال حاصلول دی .په صورت دبيع کي اوکه ترمرګه پورې فائده اخستل دی په صورت ده تدبيرکولوکي] منافي دی د هغه آزادئ سره کومه چې ده لازمه کړې وه.[ځکه چې آزادئ سره مولی د خرڅولواومدبرکولواختیارمند نه پاتې کیږی ] فَتَعَيَّنَ لَهُ الْآخَرُ نومتعين شو ددې [آزادئ] لپاره دغه بل [چه عمرو] دې.په دلالت النص سره دَلَالَةً وَكَذَا إِذَا اسْتَوْلَدَ إِحْدَاهُمَا لِلْمَعْنَيَيْنِ اوهم دا حکم دې چې کله ام ولد جوړه کړي يويه دواړو وينځو کي [يعنی چې مولی خپلودوو وينځو عائشه اوفاطمه ته اووائی .په تاسو دواړو کي يوه آزاه ده.اوددې وئيلو نه روسته په دواړوکي يوې يعنی فاطمه سره جماع اوکړی .اوپه دې جماع سره هغه اميدواره شی .نوعائشه د آزادئ لپاره متعينه شوه] د امله ددغه دوو وجوهو نه [کوم چې د تدبيرپه صورت کي ذکرشو.يعنی يوه وجه دا چې دا د عتق لپاره محل پاتې نشوه.اودويمه دا چې ددې په دې ام ولد جوړلوکي ده ترمرګه پورې ددې نه فائده اخستل مقصد ګرځولې دې.اودا دواړه خبرې دعتق سره منافي دی ]

حل اللغة: ① ابقاء: پاته پاتې کول ② الانتفاء: فائده اخستل ③ التدبير: مدبر جوړل]

تشريح:- «ومن قال لعبديه» زيدخپلودوو غلامانوعمرواوبکرته اووئيل.په تاسودواړوکي دې يوآزاد وی .خوددې نه روسته ئې مثلاً عمروخرڅ کړلو.نوبکرد آزادئ لپاره متعين شو.ځکه چې دده د عمروخرڅول په دې خبره دليل دې.چه دې ئې نه دې آزاد کړې.ګنی دآزادولونه روسته به ئې ولې خرڅولو.دغه ډول که عمرومړ شو. نو دآزادئ لپاره بکرمتعين شو.ځکه چې په دووکي خوبه يوضرورآزاديدلو.خوپه مرګ سره هغه مړغلام د عتق لپاره محل پاتې نشو.نوبکرورلـه متعين شو.اودغه ډول که ددې وينا نه روسته مثلاً عمرومدبرکړی .يعنی دا ورته اووائی .چه ته به زماد مرګ نه روسته آزاد ئې.نومعلومه شوه.چه دې د عمرود آزادئ قصد نه دې کړې.بلکه تر مرګه پورې دده نه فائده اخستل غواړی .ځکه چې مدبردمرګ نه روسته آزاديږی .نوبکرد آزادئ لپاره متعين شو.

وَلَا فَرْقَ بَيْنَ الْبَيْعِ الصَّحِيحِ وَالْفَاسِدِ مَعَ الْقَبْضِ وَبِدُونِهِ بيا هم په دې مسئله کي) د بيع صحيح او د بيع فاسد کيدلو په صورت کي ددې په حکم کي هيڅ توپير نشته.يعنی که په بيع فاسد سره ئې قبضه کړې وی او که نه وی کړې وَالْمُطْلَقِ.او که بيع مطلق وی وَبِشَرْطِ الْخِيَارِ لِأَحَدِ الْمُتَعَاقِدَيْنِ او په بائع او مشتری کي د يوکس لپاره څه شرط خيار پاته پاتې وی.[يعنی د خوښئ يا د ناخوښئ په اقرار باندې د يو شی اخستل] لِإِطْلَاقِ جَوَابِ الْكِتَابِ ځکه چې په کتاب کي کومه مسئله ليکلې شوې ده.هغه مطلق ده او ټولو صورتونو ته ګډ ده وَالْمَعْنَى مَا قُلْنَا ددې نه مراد هم هغه دوې [دوه] ضورتونه دی .کوم چې موږ بيان کړې دی يعنی هم هغه دوې [دوه] وجهې کوم چې وړاندې ذکر شوې دی

تشريح:- يعنی دا حکم چې کوم غلام خرڅ کړی .نوبل دآزادئ لپاره متعين شو.په مطلق بيع کي دې.برابره ده که دغه بيع صحيح وی اوکه فاسده وی .که مشتری دده نه غلام قبضه کړې وی اوکه نه وی .اوکه مطلق بيع ئې ورسره کړې وی .څه شرط ئې په کي نه وی لګولې.اوکه داختيارشرط ئې لګولې وی .مثلاً چې بائع دخپل ځان لپاره اختيارشرط کړی .چه ماته به مثلاً په دوې [دوه] ورځوکي د واپس کاوه ختيااروی .يا مشتری د مبيع د واپس کولواختيار دځان لپاره شرط کړی . نوپه دې ټولوصورتونوکي دويمه وينځه د عتق لپاره متعين کيږی .اوهغه آزاديږی .

وَالْعَرْضُ عَلَى الْبَيْعِ مُلْحَقٌ بِهِ فِي الْمَحْفُوظِ عَنْ أَبِي يُوسُفَ بيا د امام ابويوسف رح نه دا روايت موجود دی.که په دواړو کي ئې يو غلام منډئ يا بازار ته د خرڅولو په غرض سره بيولو (بوتللو).نودا هم د خرڅولو په حکم کي



دې.يعنی دوهم غلام د آزادئ لپاره متعين شو

تشريح:- يعنی که په دووغلامانوکي ددې وينا نه روسته يوخرڅولوته پيش کړی .نوخرڅولوته دا پيش کول د دې خبرې دليل دې.چه مولی دده د آزادئ اراده نه وه کړې.نوځکه دوهم غلام د.آزادئ لپاره متعين شو.

وَالْهِبَةُ وَالتَّسْلِيمُ وَالصَّدَقَةُ وَالتَّسْلِيمُ بِمَنْزِلَةِ الْبَيْعِ او هبه کول او حواله کول، يا په صدقه کي حواله کول، هم د خرڅولو په حکم کي دی لِأَنَّهُ تَمْلِيكٌ ځکه چې مالك داسې هم کوی .[يعنی کوم غلام ئې چې د بل کس په ملکيت کي ورکړلو.نو دا به ددې خبرې دليل وی .چه دا ئې آزاد کړې نه دې.په دې وجه به خامخا ددې نه سوا دوهم غلام آزاد وی .]

تشريح:- غلام يا وينځه چاته بخښل اوچاته صدقه کول هم د بيعې پشان دی .ځکه چې لکه څنګه بيع سبب دملکيت دې.دغه ډول هبه اوصدقه هم سبب دملکيت دې.نوچه څه حکم د بيع وی .هغه به دهبه او صدقه هم وی .

### په دوو ښځوکې يوې ته بغيره تعين نه طلاق ورکول

وَكَذَلِكَ لَوْ قَالَ لِامْرَأَتَيْهِ او هم دغه ډول که يو کس خپلو دوې [دوه] ښځو ته اووئيل إِحْدَاكُمَا طَالِقٌ چې په تاسو کي يوې کسې ته طلاق دې ثُمَّ مَاتَتْ إِحْدَاهُمَا او ددې نه روسته په دې دواړوکي يوه مړه شوه لِمَا قُلْنَا نو د طلاق لپاره به دويمه [ژوندئ] متعينه وی . ځکه چې کومه مړه شوه.دا اوس د طلاق محل پاتې نشو.هم د هغه دليل په بنا (بنياد) باندې کوم چې موږ وړاندې بيان کړې دې وَكَذَلِكَ لَوْ وَطِئَ إِحْدَاهُمَا دغه ډول په دې صورت کي هم که په دواړو کي يوې سره صحبت [کوروالی] اوکړی نو بيا به هم دا دويمه د طلاق لپاره متعينه وی لِمَا بَيَّنَّا .ددې وجه به موږ روسته بيان کړو.وَلَوْ قَالَ لِأَمَتَيْهِ إِحْدَاكُمَا حُرَّةٌ او که يو کس خپلو دوې [دوه] وينځو ته داسې اووئيل.چه په تاسو دواړو کي يوه آزاده ده ثُمَّ جَامَعَ إِحْدَاهُمَا بيا ئې په دوی کي يوې سره صحبت اوکړو لَمْ تَعْتِقِ الْأُخْرَى عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ نود ا مام ابوحنيفه رح په نيز به دويمه آزاده نه وی وَقَالَا يَعْتِقُ او صاحبين رح فرمائی .چه دويمه به آزاده وی لِأَنَّ الْوَطْءَ لَا يَحِلُّ إِلَّا فِي الْمِلْكِ ځکه چې وطی خو صرف خپلې مملوکه ښځې سره حلاله وی وَإِحْدَاهُمَا حُرَّةٌ نو هرکله چې په دوی کي يوه آزاده شوې ده نو هغه اوس دده د پاره حرامه شوې ده فَكَانَ بِالْوَطْءِ مُسْتَبْقِيًا الْمِلْكَ فِي الْمَوْطُوءَةِ اود کومې سره چې ده وطی کړې ده.په هغې کي ده خپل ملکيت پاته ساتلې دې.اوهم دا دده د پاره حلالـه ده فَتَعَيَّنَتِ الْأُخْرَى او دويمه د آزادئ لپاره متعين شوې ده لِزَوَالِهِ بِالْعِتْقِ كَمَا فِي الطَّلَاقِ .ځکه چې د آزاديدو په وجه دده ملکيت ختم شوې دې.لکه څنګه چې په طلاق کي کيږی وَلَهُ اود امام ابوحنيفه رح دليل دادې أَنَّ الْمِلْكَ قَائِمٌ فِي الْمَوْطُوءَةِ چې د کومې وينځې سره ئې وطی کړې ده.په دې کي ملکيت پاته پاتې دې لِأَنَّ الْإِيقَاعَ فِي الْمُنَكَّرَةِ ځکه چې د آزادئ واقع کيدل يو نکره يعنی غير معينې وينځې کي دی وَهِيَ مُعَيَّنَةٌ اود کومې سره ئې چې وطی کړې ده.هغه معينه ده فَكَانَ وَطْؤُهَا حَلَالًا په دې وجه دې سره وطی حلاله ده فَلَا يُجْعَلُ بَيَانًا نو داسې کول، دده د مبهم قول بيان نشی کيداې وَلِهَذَا حَلَّ وَطْؤُهُمَا عَلَى مَذْهَبِهِ په دې وجه د امام ابوحنيفه رح د مذهب مطابق دواړو سره وطی حلاله ده إِلَّا أَنَّهُ لَا يُفْتَى بِهِ خو په دې قول به فتوی نشی ورکولې.

حل اللغة: ① الايقاع: واقع کول

تشريح:- «للقو.له وله ان الملك قائم» يعنی دکومې وينځې سره چې وطی اوکړی .نوپه هغې کي دده ملکيت قائم دې.ځکه ده ورسره وطی اوکړله.نودا وينځې د وطی لپاره د وړاندې نه متعين وه.اوداسې نه ده.چه دده وطی کول د معتوقه لپاره بيان شی .البته دومره ده چې په عتق سره د وطی کولوجواز ختميږی .خودلته

معتقه معلومه نه ده.نوچه ترڅوپورې د عتق لپاره د یوې تعین نه وی شوې.نودا دواړه به په سابقه حکم پاته وی .یعنې دواړو سره به وطی جائز وی .البته د احتیاط په بناء مفتی به قول دعدم وطی دې.

ثُمَّ يُقَالُ بیا وئیلی شی الْعِتْقُ غَيْرُ نَازِلٍ قَبْلَ الْبَيَانِ چې آزادی نه واقع کیږې وړاندې د بیان نه، [چه مولی په خپل بیان سره واضحه کړی چې زما د فلانئ وینځې آزادول مراد وو] لِتَعَلُّقِهِ بِهِ د امله دتعلق د آزادئ ددې [بیان] سره،

حل اللغة: ① صیانة: ساتنه ② یصادق: صادقیږی ③ الموطوة: صیغه د اسم مفعول هغه څوك چې جماع ورسره شوې وی ]

تشریح:- دا دیوتقدیری سوال ځواب دې.هغه دا هرکله چې په غیرمعین طریقه باندې آزادولونه روسته هم ده لپاره دواړو وینځو سره وطی کول جائز دی .نوددې مطلب خوداشو.چه د مولی قول چې «إحداكما حرة» لغو اوعبث دې.ځکه په دې الفاظو باندې یوه وینځه آزادیږی .اودعتق نه روسته وطی جائزنه وی .حالانکه امام ابوحنیفه رح فرمائی .چه ددې قول نه روسته هم مولی دواړو سره وطی کولې شی . نوددې ځواب ورکوی .چه ترڅوپورې دمعتقه تعین په بیان سره نه وی شوې.نوعتق نه واقع کیږی .یعنی عتق په بیان پورې موقوف دې.اوچه په بیان پورې موقوف شو.نودواړه وینځو سره د وړاندې پشان وطی کول جائزدی .البته کله چې بیان اوشی .نویوه به آزاده شی .یعنی د مولی قول معتبر دې.خونتیجه به پرې هله مرتب کیږی .چه بیان ئې اوشی .

أَوْ يُقَالُ اويا به داسې وئیلی شی نَازِلٌ فِي الْمُنَكَّرَةِ چې [عتق] واقع کیږی .[خو] په نامعلومه وینځه کې فَيَظْهَرُ فِي حَقِّ حُكْمٍ تَقَبَّلَهُ نوښکاره کیږی به [داعتق] په حق دهغه حکم کې چې قبلوی ئې وینځه وَالْوَطْءُ يُصَادِفُ الْمُعَيَّنَةَ اووطی واقع شوې ده په معینه وینځه کې

تشریح:- وړاندې چې کوم تقدیری سوال وو.دهغې دوهم ځواب دا ورکوی .چه یا به داسې وئیلی شی .چه دده په قول عتق واقع شوې دې.خوپه غیرمعینه وینځه کې عتق واقع شوې دې.اود دې قول نه روسته چې مولی د کومې وینځې سره وطی اوکړله.نودغه وینځه غیر معینه نه ده.بلکه معینه ده.ځکه چې ده ورسره وطی اوکړله.نود مولی وطی کول دهغه غیرمتعین عتق لپاره بیان نه دې.

بِخِلَافِ الطَّلَاقِ په خلاف دطلاق [ځکه که دوو ښځوته بغیرد تعین نه طلاق ورکړی نوددې نه روسته که یوې سره وطی اوکړی .نودا وطی د مطلقه بیان نه دې.چه چاسره وطی نه وی شوې هغه دې طلاقه وی ] لِأَنَّ الْمَقْصُودَ الْأَصْلِيَّ مِنَ النِّكَاحِ الْوَلَدُ ځکه چې مقصود اصلی په نکاح کې اولاد وی .[چه اولاد پیدا شی .اونسب جاری شی ] وَقَصْدُ الْوَلَدِ بِالْوَطْءِ اوچه د وطی نه غرض ولد شو ،، يَدُلُّ عَلَى اسْتِبْقَاءِ الْمِلْكِ فِي الْمَوْطُوءَةِ نودا په موطوءه کې د ملکیت په پاته پاتې کیدو دلالت کوی صِيَانَةً لِلْوَلَدِ چې د بچی نسب محفوظ شی

تشریح:- یعنی که خاوندخپلودووښځوکې بغیردتعین نه یوې ته طلاق ورکړلو.نوپه دې صورت کې که ددې نه روسته یوې سره وطی اوکړی .نودکومې سره چې ئې وطی کړې وی .هغه به مطلقه نه وی .ځکه چې په نکاح کې د وطی کولومقصد ولد وی .اوچه ده ورسره وطی اوکړله.نودا ددې خبرې دلیل دې.چه ده په خپله دغه موطوءه ښځه کې ملك بضع پاته ساتلې دې.چه کوم ماشوم پیدا کیږی .دهغه نسب محفوظ شی .

أَمَّا الْأَمَةُ فَالْمَقْصُودُ مِنْ وَطْئِهَا قَضَاءُ الشَّهْوَةِ اود وینزې په وطی کولوکې د شهوت پوره کول مقصود وی دُونَ الْوَلَدِ ولد مقصود نه وی فَلَا يَدُلُّ عَلَى الِاسْتِبْقَاءِ نو[د وینځې وطی کول] د ملك یمین په پاته پاتې کیدو دلالت نه کوی .

تشریح:- په دې عبارت کې په مذکوره مسئله کې د عتاق اوطلاق په دواړو صورتونوکې توپیر



کوی .یعنی دمتن په مسئله کې چې دعتاق نه روسته یوې سره وطی اوکړی .نودا وطی کول په دې باندې دلالت نه کوی .چه په دې موطوءه وینځه کې دده ملك یمین پاته دې.اوکه دواړو ښځوته بغیرد تعین نه طلاق ورکړی .اوددې نه روسته په کې یوې سره وطی اوکړی .نودا وطی ددې بیان دې.چه دا موطوءه مطلقه نه ده.ځکه د وینځې په وطی کولوکې مقصود دشهوت پوره کول وی .دنسب ساتنه مقصود نه وی . او په منکوحه کې د وطی مقصود ولد او ساتنه دنسب وی .نودمقصود دې اختلاف په وجه د وینځې دعتق او د طلاق دحکم په مینځ کې توپیر واضح شو.

## د هلك په وړاندې زیږلوسره پورې د وینځې آزادي معلق کول

وَمَنْ قَالَ لِأَمَتِهِ که مولا خپلې وینځې ته اووئیل إِنْ كَانَ أَوَّلُ وَلَدٍ تَلِدِينَهُ غُلَامًا چې ستا وړومبې کوم بچې پیدا شی .که دې هلك وو فَأَنْتِ حُرَّةٌ نو ته به آزاده ئې فَوَلَدَتْ غُلَامًا وَجَارِيَةً وَلَا يُدْرَى ددې نه روسته د یو هلك او د یوې انجلی ولادت [پیدائش] اوشو أَيُّهُمَا وُلِدَ أَوَّلًا او دا معلومه نشوه.چه په دوی کې د کوم ولادت وړاندې شوې دې عَتَقَ نِصْفُ الْأُمِّ وَنِصْفُ الْجَارِيَةِ نو مور او ددې لور دواړه به نیم نیم آزاد وی وَالْغُلَامُ عَبْدٌ خو هك به پخپل خائې پوره غلام وی

تشریح:- زیدخپلې وینځې زینب ته اووئیل.که اول دې هلك اوزیږولو.نوته ازاده ئې.هغې په یوه نس هلك او انجلی دواړه اوزیږول.البته دا پته نه لګیدله.چه هلك وړاندې پیدا شوې دې اوکه جینئ،نوپه دې صورت کې نیمه برخه د مورااونیمه د انجلی آزادیږی .اوهلك به غلام وی .

لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدَةٍ مِنْهُمَا تَعْتِقُ فِي حَالٍ ځکه چې په دواړوکې د هر یو حالت دادې وَهُوَ مَا إِذَا وَلَدَتِ الْغُلَامَ أَوَّلَ مَرَّةٍ الْأُمُّ بِالشَّرْطِ چې په یو حالت کې آزادیږی .چه واقعتاً وړومبی هلك پیدا شوې وی وَالْجَارِيَةُ لِكَوْنِهَا تَبَعًا لَهَا او ددې به تابع کیدلو کې انجلی هم آزادیږی ځکه چې دلته کې دا خبره لازمیږی چې دا انجلی په کوم وخت کې پیدا شوه.ددې مور آزاده شوې وه یعنی کله چې ددې هلك پیدا شوې وو إِذِ الْأُمُّ حُرَّةٌ نو هرکله چې مور آزاده شوه حِينَ وَلَدَتْهَا، وَتَرِقُّ فِي حَالٍ وَهُوَ مَا إِذَا وَلَدَتِ الْجَارِيَةَ أَوَّلًا نو ددې بچې هم آزاد شو.او په دوهم حالت کې به دا مور او ددې بچې دواړه وینځې پاتې وی .چه کله ددې انجلی وړاندې پیدا شوې وی .. لِعَدَمِ الشَّرْطِ ځکه چې آزادئ شرط موجود نه دې

تشریح:- دا عبارت ددې دلیل دې.چه د وینځې اوجنیئ نصف آزادیږی .اوهلك به غلام وی .چه دلته دوې [دوه] حالته دی .① که فرض کړه هلك اول پیدا شوې وی .نووینځه آزادیږی .ځکه چې مولی کوم شرط لګولې وو.هغه موجود شو.اوچه دهلك په پیدا کیدو دا آزاده شی .(نوانجلی به هم آزادیږی .ځکه چې انجلی دهلك د پیدا کیدونه روسته پیدا شوې ده.اود هلك نه روسته مور آزاده شوه.نود مورپه تابعدارئ کې به دا (جینئ) هم آزادیږی .ځکه چې ولددخپلې مورتابع وی .که مورئې آزاده وی .دې به هم آزاد وی .اوکه وینځه وی .دې به هم مملوك وی .② اوپه بل حالت کې دا هم وینځه پاتې کیږی .چه انجلی ئې وړاندې زیږولې وی .ځکه چې شرط یعنی د هلك وړاندې پیدا کیدل موجود نشو.

فَيَعْتِقُ نِصْفُ كُلِّ وَاحِدَةٍ مِنْهُمَا نو دا حکم ورکړې شوې دې.چه نیمه وینځه [ مور] او نیمه انجلی [ لور] آزاده ده وَتَسْعَى فِي النِّصْفِ په دې وجه به دواړه د خپل قیمت نیمې نیمې برخې لپاره مزدوری کوی .او خپل مولا ته به ئې ادا کوی .نو آزاد به شی

تشریح:- هرکله چې په دواړوصورتونوکې یوصورت هم معلوم نه دې.نودمولی کلام د لغویت نه د بچ کاوه لپاره مونږپه دغه کلام باندې حکم مرتب کوو.اودکل په ځائې به د وینځې اوانجلی نصف نصف آزاد شی .اودپاته نصف د آزادولو لپاره به کوښښ کوی .

لتسهيلأمّا الغلام يرق في الحالين. خو هلك به په دواړوحالتونوكي غلام وی .ځکه چې دا هلك د خپلې مور د آزادیدلو نه وړاندې پیدا شوی دی. فَلِهَذَا يَكُونُ عَبْدًا .په دې وجه به دې هم هغه شان غلام پاتې وی

تشریح:- اوهلك به په دواړوصورتوكي ځكه غلام وی .كه دې اول پیدا شوی وی .نوهم دده مور په هغه وخت كي وینځه وه.هغه خودده د زیږیدل نه روسته آزاده شوه.اودوینځې ولدمملوك وی .اوكه د انجلی نه روستو پیدا شوی وی .نوبیا هم دې غلام دی.ځكه چې دده د مورد آزادئ لپاره كوم شرط لګولې شوی وو.هغه نه وو موجود شوې.نوځکه په دوهم صورت کې هم نه آزادیږی .

## دمور داړخه د هلك د وړاندې پیدا کیدو دعوی

وَإِنْ ادَّعَتْ الْأُمُّ أَنَّ الْغُلَامَ هُوَ الْمَوْلُودُ أَوَّلًا او كه وینځې دا دعوی اوکړله.چه وړومبې هلك پیدا شوی دی وَأَنْكَرَ الْمَوْلَى خو مولا ددې انکار اوکړلو وَالْجَارِيَةُ صَغِيرَةٌ او دا انجلی هم وړه وه فَالْقَوْلُ قَوْلُهُ مَعَ الْيَمِينِ نو په قسم سره به د مولا خبره قبلولې شی لِإِنْكَارِهِ شَرْطَ الْعِتْقِ ځکه چې دې مولا د وینځې د آزادیدلو شرط موجود کیدلو نه انکار کړې دې خو دې سره به دده نه قسم هم اخستلې شی فَإِذَا حَلَفَ كه ده قسم اوخوړلو لَمْ يَعْتِقْ وَاحِدٌ مِنْهُمْ نو په دې دړې واړو كي به یو كس هم آزاد نه وی وَإِنْ نَكَلَ او كه مولا د قسم خوړلو نه انکار اوکړلو عَتَقَتْ الْأُمُّ وَالْجَارِيَةُ نو مور او ددې لور به آزاده وی

تشریح:- «وإن إدعت الأم أن الغلام هوالمولـود» كه زینب د هلك وړاندې پیدا كیدودعوی اوكړله.اوانجلی ماشومه وه.اوزیدانکارکولو.نوزیدبه قسم خوری .اوفیصله به دده په حق كې كولې شی .یعنی زینب او لوربه ئې نه آزادیږی .ځكه چې زیدد شرط د واقع كیدونه منكردې.اودمنكرقول مع الیمین معتبروی .اوكه زیددقسم نه انکاراوکړلو.نود زینب قول به معتبروی .اودواړه موراولوربه آزادې شی .

لِأَنَّ دَعْوَى الْأُمِّ حُرِّيَّةَ الصَّغِيرَةِ مُعْتَبَرَةٌ ځکه چې دانجلی متعلق ددې د مور دا دعوی ،،چه دا انجلی آزاده پیدا شوې ده،، معتبره ده. لِكَوْنِهَا نَفْعًا مَحْضًا ځكه چې دا صرف د نفع خبره ده فَاعْتُبِرَ النُّكُولُ فِي حَقِّ حُرِّيَّتِهِمَا په دې وجه د مولا د قسم نه انکار كول،د مور اود لور دواړو په حق كې معتبر وی فَعَتَقَتَا په دې وجه به دواړه آزاد وی

تشریح:- «لأن دعوى الأم حرية الصغيرة» یعنی دموردا دعوی چې هلك وړاندې پیدا شوی دی.په دې باندې دوې [دوه] آزادئ مرتب كیږی .یوخپله د زینب آزادی .اوبله ددې د لـورآزادی .ځكه چې دا آزاده شی .نولورچه تابع ده. هغه به هم آزاده شی .اوچونكه لورئې نابالغه ده.نوددې په حق كې به هغه دعوی منلې شی .چه ددې په كې فائده وی .اوس چې دموردعوی معتبره شی .نوپه دې كې د انجلی تولـه فائده ده.یعنی آزادی به ورته ملاؤ شی .

وَلَوْ كَانَتْ الْجَارِيَةُ كَبِيرَةً اوكه دا انجلی بالغه وی وَلَمْ تَدَّعِ شَيْئًا او دې د خپل ځان پخپله د آزادئ دعوی اونکړه وَالْمَسْأَلَةُ بِحَالِهَا او باته مسئله هم په هغه حال وی یعنی وینځې وړومبې دهلك پیدا كیدلو دعوی اوكړله.خو مولا اونه منله.اود قسم نه ئې هم انکار اوکړلو عَتَقَتْ الْأُمُّ بِنُكُولِ الْمَوْلَى خَاصَّةً نود مولا د قسم نه په انكار كولوسره به صرف مور آزاده وی دُونَ الْجَارِيَةِ خو انجلی به نه آزادیږی لِأَنَّ دَعْوَى الْأُمِّ غَيْرُ مُعْتَبَرَةٍ فِي حَقِّ الْجَارِيَةِ الْكَبِيرَةِ ...ځكه چې د بالغه انجلی په اړه كې د مور دعوی كول،چه دا آزاده ده.ددې اعتبا ربه نشی کولې وَصِحَّةُ النُّكُولِ تَبْتَنِي عَلَى الدَّعْوَى ځكه چې د قسم په انکار سره په دې صورت كې اقرار منلې شی .چه كنې دې پخپله د یوې خبرې دعوی كړې وی فَلَمْ يَظْهَرْ فِي حَقِّ الْجَارِيَةِ او په موجوده مسئله كې چونكه د بالغه انجلی د اړخه هیڅ دعوی نه ده شوې.نو ددې په اړه كې به دقسم نه د انکار به هم څه اثر نه وی

تشریح:- «ولو كانت الجارية كبيرة» كه انجلی بالغه وی .اودا د هلك د وړاندې پیدا كیدو دعوی نه كوی . او



مولی د قسم کولونه انکاراوکړلو.نواوس په دې صورت کې د مولی قسم ته اړتیا ځکه پیښ شوې دی. چې وینځې دعوی کړې ده.اوچه ده دقسم نه انکاراوکړلو.نودعوی معتبره شو.البته په دې صورت کې چونکه د كبیره انجلی داړخه د خپلې آزادئ دعوی نشته.نودا به نه آزادیږی .ځکه چې دقسم نه انکارکول دعوی ته تقویت ورکوی .اوپه هغې حکم مرتب کیږی .اودلته هډودعوی شته نه،نوحکم به پرې څه مرتب شی .

## د بالغې انجلی داړخه د هلك د وړاندې پیدا کیدو دعوی

وَلَوْ كَانَتْ الْجَارِيَةُ الْكَبِيرَةُ البته كه بالغه انجلی پخپله دعوی اوكړی هِيَ الْمُدَّعِيَةُ سَبْقَ وِلَادَةِ الْغُلَامِ چې وړومبې هلك پیدا شوې وو وَالْأُمُّ سَاكِتَةٌ او ددې مور هغه وخت خاموشه پاتې شوې وه يَثْبُتُ عِتْقُ الْجَارِيَةِ بِنُكُولِ الْمَوْلَى نود مولا د قسم په انکار سره دا انجلی آزادیږی دُونَ الْأُمِّ خو مور به نه آزادیږی لِمَا قُلْنَا ځكه چې د مور دعوی د جنیئ په حق كې معتبره نه وی .او په كومو صورتونوكې چې د مولا نه د قسم اخستلو اړتیا وی

هل اللغة* ① الكبيرة: مشره ② التحليف: قسم وركول ③ القدر: اندازه ④ سبق: وړاندې والې]

تشریح:- نوره مسئله هم هغه شان ده.څنګه چې وړاندې وه.البته په وړاندې صورت كې موردآزادئ مدعیه وه.اوپه دې صورت كې كبیره جاریه مدعیه ده.په دې صورت كې به دا انجلی آزادیږی .اودلیل هم هغه دې.كوم چې په وړاندینی صورت كې مورډ د موریعنی زینب د دعوی دمعتبر كاوه لپاره بیان كړلو.

وَالتَّحْلِيفُ عَلَى الْعِلْمِ فِيمَا ذَكَرْنَا په دوی كې به ددوی د علم په بنا (بنیاد)باندې قسم اخستلې شی .چه زه د واقعه نه خبر نه یم.چه ړومبې هلك پیدا شوې دې لِأَنَّهُ اسْتِحْلَافٌ عَلَى فِعْلِ الْغَيْرِ ځكه چې دلته كې د غیر په فعل او عمل باندې به دده نه قسم اخستلې شی

تشریح:- قاعده دا ده.چه یوسړی ته قسم وركولې شی .نودده د خپل فعل په كولویا نه كولوپه علم به ورته قسم وركولې شی .مثلاً یوكس به داسې قسم خوری .چه زما دې قسم وی .مادا كارداسې كړې دې یا نه دې كړې.اوكومه مسئله چې زیربحث ده.په دې كې چې مولی ته قسم وركولې شی .نودا د وینځې په فعل باندې قسم وركولې شی .یعنی د ولد پیدا كیدل د وینځې كار دې.هغې ته پته لګی .چه اول هلك پیدا شوې دې اوكه جینئ.ددې امله به مولی قسم خوری .چه زما دې قسم وی .ماته علم نشته.چه اول هلك پیدا شوې دې.داسې قسم به نشی وركولې.چه زما دې قسم وی .اول هلك پیدا شوې دې

وَبِهَذَا الْقَدْرِ يُعْرَفُ مَا ذَكَرْنَا مِنْ الْوُجُوهِ فِي كِفَايَةِ الْمُنْتَهَى او زموږ به خودلی دې تفصیل سره هغه صورتونه هم معلوم شو.كوم چې موږ په كفایت المنتهی كې ذكر كړی دی .

تشریح:- دصاحب هدایه رح تالیف كفایة المنتهی یونایاب كتاب دې.ددې امله هغې ته مراجعت اونكړې شو.البته په جامع صغیركې په متن كې د ذكرشوو صورتونونه علاوه دوې [دوه] صورتونه نور هم ذكرشوی دی .یودا چې دتولودهلك د زیږیدل په اولیت اتفاق وی .په دې صورت كې وینځې اوجاریه دواړه به آزادیږی .دوهم دا چې واړه دانجلی د زیږیدل په اولیت باندې متفق وی .نوپه دې صورت كې هیڅ څوك نه آزادیږی .

## د غلام په آزادولوباندې ددووكسانوګواهی

قَالَ صاحب دقدوری فرمائی وَإِذَا شَهِدَ رَجُلَانِ عَلَى رَجُلٍ أَنَّهُ أَعْتَقَ أَحَدَ عَبْدَيْهِ چې كله ګواهی وركړی دوې [دوه] نفر په یوسړی چې ده په خپلودوو غلامانوكې یوآزاد كړې دې فَالشَّهَادَةُ بَاطِلَةٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ نوګواهی باطله ده په نیزد امام ابوحنیفه رح

تشریح:- شهادت ځكه باطل دې.چه په حقوق العباد كې د شهادت د صحت دارومدار په په دعوی باندې وی .اوددعوی لپاره د مدعی اړتیا وی .اودلته نه دعوی شته اونه مدعی .ځكه چې په غلامانوكې خویوهم د

خپل حريت دعوى نه كوي .اومولى په وينا باندې په دوو غلامانوكي يوازاد دې.خوهغه مبهم اوغيرمتعين دې.نوځكه شهادت باطل شو.

**إِلَّاأَنْ يَكُونَ فِي وَصِيَّةٍ** البته دا [شهادت] په وصيت كې وى **اِسْتِحْسَانًاذَكَرَهُ فِي كِتَابِ الْعَتَاقِ**..نود استحسان په وجه [دا شهادت قبول دې] ذكركړې ده دا مسئله امام محمد رح په كتاب العتاق كې.

**تشريح:-** يعني په ذكرشوې مسئله كې شهادت باطل دې.البته كه ګواهانودا ګواهي وركړله.چه ده دمرګ په وخت كې آزاد كړې دې.نوپه دې صورت كې استحساناً عتق ثابتيږي .وجه د استحسان دا ده.چه په حالت د صحت اومرض دواړوكي (تدبير ،دمولى خپل غلام ته ونيل.چه زما د مرګه روسته ته آزاد ئې)د وصيت په حكم كې دې.اوپه وصيت كې وصيت كونكې په خپله مدعى دې.اومدعى دخپل وصيت نفاذ اودهغې ثابتولوته محتاج دې.ځكه چې بعضې وخت دې په خپل وصيت سره دخان نه يوه لويه دنياوى ذمه وارى لرې كول غواړي .مثلاً يومتنازع څيزوى .دې خپل ژوند كې دهغې تصفيه كول غواړي .چه روستو كشرانوته څه مسئله نه وى .يا ده دخپلوواړثانو لپاره ډيرڅه كړى وى .اوپه خپلواملاكوكي دآخرت لپاره څه وقف كول يا صدقه كول ضرورى ګڼړي .نوهركله چې دمتن په مسئله كې مولى د موصى په حكم ګڼبې شو.نولكه څنګه چې موصى مدعى حسابيږي .اودده وصيت په منزله د دعوى وى .دغه ډول دلته هم مولى مدعى اودده آزادول دعوى شوه.نوچه دعوى اومدعى موجود شو.نوشهادت هم صحيح شو.

دا خواستحسان وو.اوقياس هم هغه دې.كوم چې په وړاندينۍ مسئله كې موږ بيان كړلو.چه په ظاهره دلته نه دعوى شته.اونه مدعى .اودصحت شهادت لپاره دعوى اومدعى ضرورى وى .

## دطلاق په مسئله كې دشهادت صحت

**وَإِنْ شَهِدَا أَنَّهُ طَلَّقَ إِحْدَى نِسَائِهِ** او كه ګواهي وركړله .[دغه دوو ګواهانو]چه ده خپلې يوې ښځې ته طلاق وركړې دى **جَازَتِ الشَّهَادَةُ** نو ګواهي به جائز وى **وَيُجْبَرُ الزَّوْجُ** اودا سړې به مجبوره كولاى شى **أَنْ يُطَلِّقَ إِحْدَاهُنَّ** **وَهٰذَا بِالْإِجْمَاعِ** چې طلاق وركړى خپلې يوې ښځې ته **وَقَالَ أَبُويُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ رَحِمَهُمَا اللهُ** اوامام ابويوسف اومحمد رح فرمائى **اَلشَّهَادَةُ فِي الْعِتْقِ مِثْلُ ذٰلِكَ**..چه شهادت په عتق كې پشان ددې [شهادت دطلاق] دې **وَأَصْلُ هٰذَا** په دې مسئله كې د اختلاف اصل دادې **أَنَّ الشَّهَادَةَ عَلَى عِتْقِ الْعَبْدِ لَاتُقْبَلُ مِنْ غَيْرِدَعْوَى الْعَبْدِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ** چې د امام ابوحنيفه رح په نيز پخپله د غلام د دعوى نه بغير د آزاديدلو ګواهي وركول، مقبول نه ده **وَعِنْدَهُمَا تُقْبَلُ** خود صاحبينو رح په نيز باندې قبول ده **وَالْمَسْأَلَةُ مَعْرُوفَةٌ** او دا مسئله مشهوره ده **وَالشَّهَادَةُ عَلَى عِتْقِ الْأَمَةِ وَطَلَاقِ الْمَنْكُوحَةِ مَقْبُولَةٌ مِنْ غَيْرِدَعْوَى بِالْاِتِّفَاقِ** او طلاق د منكوحې مقبول دې بغير د دعوى نه په اتفاق سره **وَإِذَاكَانَ دَعْوَى الْعَبْدِ شَرْطًا عِنْدَهُ** بيا هركله چې د امام اعظم رح په نيز د غلام د عوى كول شرط دى **لَا تَتَحَقَّقُ فِي مَسْأَلَةِ الْكِتَابِ** نود جامع صغير په مسئله كې كومه چې وړاندې بيان شوه.په هغې كې دعوى نه ثابتيږي **لِأَنَّ الدَّعْوَى مِنَ الْمَجْهُولِ لَاتَتَحَقَّقُ فَلَاتُقْبَلُ الشَّهَادَةُ** نوګواهي به هم مقبول نه وى **وَعِنْدَهُمَا لَيْسَ بِشَرْطٍ** اود صاحبينو رح په نيز چونكه دعوى كول شرط نه دى **فَتُقْبَلُ الشَّهَادَةُ** په دې وجه به ګواهي مقبول وى **وَإِنِ انْعَدَمَ الدَّعْوَى** اګر چې د عوى ئې نه وى كړې **أَمَّافِي الطَّلَاقِ فَعَدَمُ الدَّعْوَى لَايُوجِبُ خَلَلًافِي الشَّهَادَةِ** البته د طلاق په صورت كې په عوى كاوه سره په ګواهۍ كې هيڅ خلل نه راځى **لِأَنَّهَالَيْسَتْ بِشَرْطٍ فِيهَا** ځكه چې د طلاق په ګواهۍ كې دعوى شرط نه ده

**تشريح:-** قوله وأصل هذا أن الشهادة على عتق العبد لاتقبل الخ يعني بناء داختلاف دا ده.چه دامام ابوحنيفه رح په نيزپه عتق كې دشهادت لپاره دعوى شرط ده.اوهلته دعوى نشته.نوشهادت باطل دې.اوپه نكاح كې دطلاق لپاره دعوى شرط نه ده.بلكه كه ښځه د طلاق وركولودعوى نه كوى .اودووكسانوګواهي وركړله.چه



زيدخپلې ښځې ته طلاق وركړې دې.نوددوى شهادت به ځكه قبول وى .چه طلاق دشرع حق دې.په دې كې دبنده د دعوى اړتيا نشته.اوعتق د بنده حق دې.نوپه هغې كې د بنده دعوى ضرورى ده.اودصاحبينو رح په نيزپه مسئله دعتق اوطلاق دواړوكي دعوى شرط نه ده.نودهغوى په نيزپه مسئله دعتق كې هم شهادت باطل نه دې.

## ددوو وينځوپه آزادولوګواهي وركول

**وَلَوْشَهِدَا أَنَّهُ أَعْتَقَ إِحْدَى أَمَتَيْهِ** اوكه ګواهۍ ئې وركړله.چه ده په خپلودوو وينځوكې يوه آزاده كړې ده **لَاتُقْبَلُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ** نونه به قبليږي په نيز د امام ابوحنيفه رح **وَإِنْ لَمْ تَكُنِ الدَّعْوَى شَرْطًا** اګرچه دعوى شرط نه ده په دې [مسئله] كې **فِيهَالِأَنَّهُ إِنَّمَا لَاتُشْتَرَطُ الدَّعْوَى لِمَا أَنَّهُ يَتَضَمَّنُ تَحْرِيمَ الْفَرْجِ** اودعوى ځكه نشى شرط كولې چې دا دعوى متضمن ده تحريم د شرمګاه لره **فَشَابَهُ الطَّلَاقَ** نودا [مسئله] مشابه شوه د طلاق [دمسئلې] سره

**حل اللغة:** ① تحريم: حرامول ② الفرج: شرمګاه]

**تشريح:-** او كه دوې [دوه] ګواهانو دا ګواهي وركړله.چه ده خپلو دوې [دوه] وينځو ته ونيلى دى .چه په تاسو دواړو كې يوه آزاده ده.نود امام ابوحنيفه رح په نيز دا ګواهي هم مقبوله نه ده.اګرچه دعتق په ګواهۍ كې دعوى شرط نه ده.او ددعوى عدم شرطيت صرف په دې وجه دې.چه د آزادولو نه روسته ددې د شرمګاه په مولا باندې حراميدل لازميږي .نو دا د طلاق سره مشابه شوه.يعني لكه څنګه چې د طلاق نه روسته په خاوندباندې ښځې سره وطى حراميږي .دغه ډول دعتق نه روسته هم د وينځې وطى كول حراميږي .اوپه طلاق كې دښځې داړخه د طلاق دعوى كول شرط نه ده.لكه چې وړاندې تيرشو.

**وَالْعِتْقُ الْمُبْهَمُ لَا يُوجِبُ تَحْرِيمَ الْفَرْجِ عِنْدَهُ** اوعتق مبهم نه واجبوى تحريم د فرج په نيزدامام ابوحنيفه رح **عَلَى مَاذَكَرْنَاهُ** لكه څنګه چې موږ ذكركړى دى

**تشريح:-** دابوحنيفه رح په نيزعتق غيرمتعين باندې وطى نه حراميږي .مثلاً يوكس خپلودوو وينځو ته اوونيل په تاسودواړوكي دې يوه آزاده وى .نودا عتق مبهم دې.ځكه چې معلومه نه ده.دكومې د آزادولو اراده ئې كړې ده.نوپه دې عتق مبهم باندې به د آزادۍ حكم هله لړي .چه د مولى داړخه په كې د يوې تعين اوشى اوچه تعين نه وى شوې.نود وړاندې پشان ده لپاره دواړو سره وطى كول جائزدى .ځكه چې ددوى سره دجماع حرمت دمولى په بيان موقوف دې.نوچه بيان نه وى شوې.سابقه حكم چې د وينځې سره د وطى جوازدې.هغه به پاته وى .

**فَصَارَكَالشَّهَادَةِ عَلَى عِتْقِ أَحَدِ الْعَبْدَيْنِ** نواوګرځيدو پشان د آزادۍ يو ددوو غلامانو.

**تشريح:-** په دې وجه به په دواړو كې د يوې وينځې د آزادولو ګواهي داسې وى .لكه چې په دووغلامانوكې ئې ديو كس دآزادولو ګواهي وركړې وى .چه مولى دخپل صحت په حالت كې په دواړو غلامانو كې يو آزاد كړې دې.اود غلام په آزادولوګواهي وركول صحيح نه دى .نودغه ډول دلته هم د دوو وينځو نه د يوې په آزادولو باندې ګواهي وركول صحيح نه دى .

**وَهٰذَا كُلُّهُ إِذَا** اودا واړه صورتونه په هغه وخت كې دى **شَهِدَا فِي صِحَّتِهِ** چې ګواهي اوكړى [دواړه ګواهان] په صحت دده [مولى ] كې **أَنَّهُ أَعْتَقَ أَحَدَعَبْدَيْهِ** چې ده په خپلودوو غلامانوكي يوآزاد كړې دې. **أَمَّاإِذَاشَهِدَا أَنَّهُ أَعْتَقَ أَحَدَعَبْدَيْهِ فِي مَرَضِ مَوْتِهِ** او هركله چې ګواهي وركړى چې ده آزاد كړې دې يو په دوو غلامانوكې په مرض الوفات كې **أَوْشَهِدَا عَلَى تَدْبِيرِهِ فِي صِحَّتِهِ** يا ګواهي اوكړى دواړه په تدبيردده [چه ده په دواړو غلامانوكې يومدبرګرځولې دې] په حالت د صحت دده [مولى ] كې **أَوْفِي مَرَضِهِ** اويا په مرض دده [مولى ] كې **وَأَدَاءُ**

الشهادة في مرض موته اوادا ئي كړلو شهادت په مرض د وفات دده [مولى ] كي أو بعد الوفاة يا دده دمرګ نه روسته تقبل استحسانا نوقبلولي به شي [ګواهي د دوى ] داستحسان د امله لأن التدبير حيثما وقع ،خكه چي تدبيرپه هرحالت كي واقع شي .[كه صحت وى او كه مرض] وقع وصية ،نووصيت واقع كيږى . وكذا العتق في مرض الموت وصية اودغه ډول عتق په مرض الوفات كي وصيت دي

حل اللغة ① الشيوع: خوروالي ]

تشريح:- كه دووګواهانودا ګواهى وركړله.چه مولى په دواړوغلامانوكي يوغلام بغيرتعين آزاد كړي دي.اودآزادئ وقوع د صحت يا مرض الوفات يا دوفات نه روسته اوشوه.نودا ګواهى به د استحسان په طورمقبول وى .اويوغلام به آزاديږى .نودغه ډول كه په دووينخو كي د يوې په آزادئ باندي شهادت اوكړي شى .نوپه دي كي به هم د استحسان په طور ديوې د آزادئ په حق كي ګواهى مقبوله وى .خكه چي مدبركول كه په مرض كي وى اوكه په صحت كي وى .نودا د وصيت په حكم كي دي.هم دا وجه ده.چه تدبيرد وصيت په حكم كي دي.مدبريه په ثلث مال كي آزاديږى .اودغه ډول كه آزادى په مرض الموت كي وى .نودا به هم د وصيت په حكم كي وى .يعنى غلام به د ثلث مال نه آزاديږى .

والخصم في الوصية إنما هو الموصي اوخصم په وصيت كي هغه موصى وى وهو معلوم اوهغه [موصى ] معلوم دي وعنه خلف اودده د اړخه خليفه شته وهو الوصي أو الوارث اوهغه وصى يا وارث دي..ولأن العتق في مرض الموت يشيع بالموت فيهما اوبله دا چي عتق په مرض الوفات كي خوريږى په مرګ سره په دواړو [غلامانو] كي فصار كل واحد منهما خصما متعينا نواوګرځيدل هريود دواړو[غلامانو] نه خصم معلوم ولو شهدا بعد موته اوكه دي دواړو ګواهي وركړله روسته د مرګ دده [مولى ] نه أنه قال چي ده په خپل ژوند كي ونيلي وو في صحته أحدكما حر چي په تاسودواړو[غلامانو] كي دي يوآزاد وى . فقد قيل: لا تقبل لأنه ليس بوصية وقيل تقبل نوونيلى شوى دي چي نه به شى قبلولي للشيوع خكه چي دا وصيت نه دي.اوونيلي شوى دى چي قبلولي به شى .د املـه د خوريدو[د آزادئ نه دواړو غلامانوته روسته د مرګه وهو الصحيح والله أعلم وهم دا قول صحيح دي.

تشريح:- خكه چي د وصيت نافذ كول دمړى حق دي.نومړي تقديرا مدعى دي.اووصى يا وارث دده خليفه ده.نودا ګواهى به قبلولي شى .اودويمه وجه دا ده.چه عتق په دواړوكي په مرګ سره خور شو.خكه چي دبيان نه د عجز په صورت كي د يوغلام عتق واجب وو.نود دواړو لپاره عتق شو.اوهريودخپل عتق مدعى جوړيدي شى .مصنف[رح] دلته د قياس وجه نه ده ذكركړي.چه مقضى له (دچا لپاره چي فيصله كولي شى ) په دي صورت كي مجهول دي.اود مجهول دعوى نه ثابتيږى .

## باب الحلف بالعتق

ژباړه:- [ دا] باب د آزادئ د قسم [ په بيان كي ] دي.

ومن قال كه يو كس دا اوونيل إذا دخلت الدار چي كله زه دي كور ته داخل شم فكل مملوك لي يومئذ فهو حر نو په هغه ورځ دي زما هر يو غلام آزاد وى وليس له مملوك حالانكه ددي ونيلو په ورځ دده سره هيڅ يو غلام هم نه وو فاشترى مملوكا خو ددي نه روسته ئي يو غلام واخستلو ثم دخل عتق بيا په دي كور كي دي داخل شو.نو دا غلام به ازاد وى لأن قوله يومئذ تقديره يوم إذ دخلت خكه چي دده دا ونيل.چه « يومئذ » ،،په دغه ورځ دي زما هر يو غلام آزاد وى ،، ددي اصل وو.« يوم اذ دخلت » ،،نوددي معنى شوه.چه په كومه ورځ زه داخل شم،، إلا أنه أسقط الفعل خوده فعل « دخلت » حذف كړلو وعوضه بالتنوين او ددي فعل په خاني ئي صرف اشاره يعنى تنوين پاتي كړلو فكان المعتبر قيام الملك وقت الدخول دغه ډول د داخليدلو په وخت به د ملكيت وجود معتبر وى وكذا لو كان في ملكه يومئذ دغه ډول كه د قسم په وخت دده په ملكيت كي غلام



موجود وى حلف عبد فبقي على ملكه حتى دخل او دده كورته د داخليدلود وخت پورې دده په ملكيت كي موجود وو عتق نو دا به آزاد وى لما قلنا په هغه وجه كومه چي موږ وړاندي بيان كړي ده.چه كورته د داخليدو په وخت غلام په ملكيت كي موجود دي

تشريح:- په مسئله كي څه اشكال نشته.

ولو لم يكن قال في يمينه يومئذ او كه ده د قسم په موقع باندي لفظ د ،،دغه ورځ،، او نه ونيل لم يعتق نو روسته اخستونكي غلام به نه ازاديږى لأن قوله كل مملوك لي خكه چي دده دا ونيل چي ،،زما دا غلام ،، دداسي غلام لپاره ونيل صحيح دى للحال كوم چي دغه وخت دده په ملكيت كي موجود وي والجزاء حرية المملوك في الحال او ددي قسم جزاء دا وه.چه كوم غلام في الحال موجود وو.هغه به ازاديدو. إلا أنه لما دخل الشرط على الجزاء خوچونكه په جزاء باندي شرط داخل دي تأخر إلى وجود الشرط نود روستو موجوديدو په وجه په دي جزاء كي تاخير اوشو نو كور ته د داخليدلو پورې چي كوم غلام فى الحال موجود وي فيعتق إذا بقي على ملكه إلى وقت الدخول كه دده په ملكيت كي پاته پاتي شو.نوهغه به آزاد وى ولا يتناول من اشتراه بعد اليمين او كوم غلام چي ددي شرط او قسم نه روسته واخستلي شو.هغه به په ازادئ كي ګډ نه وى .

حل اللغة ① اشتراء: اخستل ② حرية: آزادى ③ تاخر: روستو شو]

تشريح:- «للقوله مملوك لى للحال الخ» اودا خكه چي لام په ،،لى ،، كښي داختصاص لپاره دي.اوداختصاص معنى په هغه غلام كي موجوديږى .چه فى الحال دده په ملكيت كي وى .اوكه فى الحال مملوك نه وى .نودا غلام اونورغلامان په يوه درجه كي دى .

ومن قال او كه يو كس اوونيل. كل مملوك لي ذكر فهو حر كه زه دي كور ته داخل شوم.نو زما د ملكيت واړه هر نر [ مذكر] غلام ازاد دي.(كوم چي د مذكر د جنس څني وى وله جارية حامل او دي وخت دده يوه وينځه په حمل سره وه فولدت ذكرا ددي هلك [مذكر] پيدا شو لم يعتق نو دا به نه آزاديږى وهذا إذا حكم په هغه صورت كي دي ولدت لستة أشهر فصاعدا چي د ونيلو نه شپږ يا ددي نه په زياتو مياشتو كي پيدا شوي وى . ظاهر نو ښكاره خبره ده.چه دا به آزاده نه وى لأن اللفظ للحال خكه چي كوم لفظ ده ونيلي دي هغه د حال لپاره دي. وفي قيام الحمل اوپه وجود د حمل كي وقت اليمين په وخت د قسم كي احتمال احتمال شته (يعنى دا احتمال شته چ چي حمل موجود وى )

حل اللغة ① يتناول: شامليږى ② جنين: د مور په رحم كي بچي ③ تقييد: مقيد كول ]

تشريح:- زيدداسي وائى .چه زما هرنارينه غلام دي آزاد وى .اوددي قول نه شپږ مياشتي روسته يا زيات د شپږو مياشتو نه دده د وينځي هلك پيدا شو.نوپه دي صورت كي دغه هلك چي روستو پيدا شونه آزاديږى .خكه چي په عرف كي د مذكرمملوك اطلاق په هغه غلام باندي صادقيږى .كوم چي في الحال موجود وى ..اوپه حمل باندي د مذكرمملوك اطلاق نه صحيح كيږى .

لوجود أقل مدة الحمل بعده خكه چي ددي ونيلو نه روسته د حمل موده چي دا كم نه كم شپږ مياشتي ده هم دا موجود ده

تشريح:- يعنى د موريه نس كښي دبچي دكم نه كمه موده شپږ مياشتي دي. نو هر كله چي دا هلك په شپږمه مياشت پيدا شو.نودا ممكنه ده.چه د آزادئ د قول په وخت كي دده علوق (رحم ته د نطفي داخليدل) نه وو شوي. بلكه د تعليق نه روسته ئي علوق راغلي وى .نوخكه نه آزاديږى .

وكذا إذا ولدت لأقل من ستة أشهر..دغه ډول كه د شپږ مياشتو نه په كم باندي پيدا شو نو د ونيلو په وخت د

حمل موجود کیدل یقیني وو.خو نه آزادیږي لِأَنَّ اللَّفْظَ يَتَنَاوَلُ الْمَمْلُوكَ الْمُطْلَقَ ځکه چې د ،،هر مملوك،، لفظ کوم چې ده ونیلي دي.هغه مطلق مملوك ته ګډ دي.یعنی وَالْجَنِينُ مَمْلُوكٌ تَبَعًا لِلْأُمِّ دا چې دا پوره مملوك اود وینځې د خیټې بچې د خپلې مور تابع جوړیږي . او مملوك وی لامقصودا پخپله مملوك مطلق نه وی وَلِأَنَّهُ عُضْوٌ مِنْ وَجْهٍ وَاسْمُ الْمَمْلُوكِ او په دې وجه هم چې د مور د خیټې بچې په یو اعتبار سره د مور د یو اندام پشان دی.يَتَنَاوَلُ الْأَنْفُسَ دُونَ الْأَعْضَاءِ او د مملوك لفظ یواندام ته نه ، بلکه پوره نفس ته ګډ دي

تشریح:- دغه ډول ددې قول نه روسته که دشپږومیاشتو نه وړاندې وړاندې مثلا په پنځمه میاشت هلك پیدا شو.نوهم نه آزادیږي .دلته اګرچه دا په یقین سره معلومه ده.چه د قسم په وخت کي دا هلك دمور په رحم کي موجود وو.ځکه داسې مورږ نشو وئیلې.د قسم نه روسته ددې ماشوم علوق راغلې دي.اوپه پنځمه میاشت پیدا شوې دي.بلکه یقیني خبره ده.چه د قسم په وخت کي به دا هلك په رحم کښې موجود وو.البته دې مورږ ځکه نه آزادوو.چه لفظ د ملوك هغه چاته شامليږي .چه هغه مستقل حيثيت لري .اودلته دا هلك دقسم په وخت کي جنين وو.دمور تابع وو.مستقل اوځانله حيثيت ئې نه لرلو.ځکه نه آزاديږي .اوبل ددې امله دې نه آزاديږي .چه د تعليق په ؤخت کي دې يواندام وو.اودمملوك اطلاق په کامل بدن باندې کيږي په يواندام نه کيږي .

وَلِهَذَا لَا يَمْلِكُ بَيْعَهُ مُنْفَرِدًا په دې بناء باندې صرف حمل خرڅول جائز نه دی. قَالَ الْعَبْدُ الضَّعِيفُ او مصنف رح فرمائيلی دی

تشریح:- په دې خبره دليل چې جنين تابع دې مستقل حيثيت نه لري .دا دې.چه يوکس صرف دجنين بيع نشي کولې.ځکه چې دا احتمال لري .چه داحمل د وخت نه وړاندې ساقط شي .

وَفَائِدَةُ التَّقْيِيدِ بِوَصْفِ الذُّكُورَةِ چې د مملوك لفظ سره نر، يعنی د مذکر وصف بيانولو فائده داده .أَنَّهُ لَوْ قَالَ: كُلُّ مَمْلُوكٍ لِي تَدْخُلُ الْحَامِلُ فَيَدْخُلُ الْحَمْلُ تَبَعًا لَهَا که دا صرف خپل مملوك وې.نو دا به حمل ته هم شامليدلو.او په دې کي به ضمنا او تبعا حمل هم داخليدو.

تشریح:- که دې کس دمملوك سره د ذکوريت صفت نه وې لګولې.نوپه دې صورت کي دا قول حمل ته هم شامليدو،اوحمل به هم آزاديدلو.ځکه چې حمل هم په مملوك کي داخليږي .خوچونکه ده ورسره د ذکوريت صفت ذکرکړې دې.نوځکه حمل ته نه شامليږي .

## په صبا پورې د مملوك آزادول تعليق

وَإِنْ قَالَ او که ده داسې اووئيل كُلُّ مَمْلُوكٍ أَمْلِكُهُ چې هر هغه مملوك چې د هغې زه مالك يم.حُرٌّ بَعْدَ غَدٍ هغه دې د سهار نه روسته آزاد وی أَوْ قَالَ يا ئې داسې اوئيل كُلُّ مَمْلُوكٍ لِي فَهُوَ حُرٌّ بَعْدَ غَدٍ زما هر مملوك دې د سهار نه روسته آزاد وې وَلَهُ مَمْلُوكٌ او په دې وخت کي ئې يو مملوك موجود دې فَاشْتَرَى آخَرَ بيا ده دوهم واخستلو ثُمَّ جَاءَ بَعْدَ غَدٍ بيا د سهار نه روسته چې کومه ورځ راغله عَتَقَ الَّذِي فِي مِلْكِهِ يَوْمَ حَلَفَ يا په دې کي د قسم په ورځ چې کوم مملوك دده په ملکيت کي وو.هغه ازاديږي لِأَنَّ قَوْلَهُ ځکه چې د مالك دا وئيل أَمْلِكُهُ لِلْحَالِ چې زه د.کوم مالك يم حَقِيقَةً نو په حقيقت کي دده ملکيت په هغه غلام باندې ثابت دې کوم چې دې وخت موجود دې يقال هم په دې وجه وئيلې شي أَنَا أَمْلِكُ كَذَا وَكَذَا چې زه ددې (اس) مالك يم.يا ددې (کور) مالك يم) وَيُرَادُ بِهِ الْحَالُ،وَكَذَا يُسْتَعْمَلُ لَهُ مِنْ غَيْرِ قَرِينَةٍ او ددې نه مراد هم هغه وي.کوم چې دغه وخت موجود وی . (چه څوچه ددې په خلاف څه قرينه نه وی وَالِاسْتِقْبَالُ بِقَرِينَةِ السِّينِ أَوْ سَوْفَ فَيَكُونُ مُطْلَقُهُ لِلْحَالِ او د قرينه نه بغير موجود غلام لپاره ثابت ده فَكَانَ الْجَزَاءُ نو هم دا جزاء شوه. حُرِّيَّةَ الْمَمْلُوكِ فِي الْحَالِ چې في



الحال کوم غلام موجود وې مُضَافًا إِلَى مَا بَعْدَ الْغَدِ غه به د سهار نه روسته آزاديږي فَلَا يَتَنَاوَلُ مَا يَشْتَرِيهِ بَعْدَ الْيَمِينِ په دې کي چې کوم غلام ئې ددې قسم نه روسته اخستې دې.هغه نه شامليږي .

تشریح:- «وللإستقبال بقرينة السين» يعنی د «أملكه» صيغه په حال کي حقيقت دې.نوفي الحال چې دده په ملکيت کي څوك وی .دده قول هغه ته ګډ دې.اوهغه به آزاديږي .اودکوم چې دې د قسم خوړلو نه روسته مالك شوې وی .د «أملكه» صيغه هغې ته ځکه نشي شامليدې.چه دقسم نه روسته چې ئې دې مالك شوې دې.هغې ته مستقبل وئيلی شی .اود «أملكه» صيغه دمستقبل لپاره په هغه وخت کي استعماليږي .چه په استقبال باندې قرينه موجوده وی .يعنی حرف سين يا سوف.اودلته په «أملكه» کي په دې دواړوکي يوهم نشته.

## دحريت اضافت دمرګ نه روستوموده ته

وَلَوْ قَالَ که يو کس اووئيل كُلُّ مَمْلُوكٍ أَمْلِكُهُ چې هر هغه غلام چې د هغې زه مالك يم أَوْ قَالَ يا ئې داسې اووئيل كُلُّ مَمْلُوكٍ لِي حُرٌّ بَعْدَ مَوْتِي چې زما واړه غلامان زما د مرګ نه روسته آزاد دی وَلَهُ مَمْلُوكٌ او ددې وئيلو په وخت دده صرف يو غلام وو فَاشْتَرَى مَمْلُوكًا آخَرَ ددې نه روسته ده بل [ دوهم ] غلام هم واخستلو فَالَّذِي كَانَ عِنْدَ وَقْتِ الْيَمِينِ نودا غلام چې کوم دده د قسم خوړلو په وخت دده سره موجود وو مدبر.هم دا به مدبر وی وَالْآخَرُ لَيْسَ بِمُدَبَّرٍ يعنی روسته اخستونکې غلام به مدبر نه وی وَإِنْ مَاتَ عَتَقَا مِنَ الثُّلُثِ او د مولی د وفات نه روسته به دده د وراثت د دريمې برخې نه دواړه ازاديږي وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ فِي النَّوَادِرِ خو ابويوسف رح په نوادر کي فرمائيلی دی يَعْتِقُ مَا كَانَ فِي مِلْكِهِ يَوْمَ حَلَفَ چې ددې قسم د خوړلو په وخت چې کوم غلام هم دده په ملکيت کي وی هغه به آزاديږي وَلَا يَعْتِقُ مَا اسْتَفَادَ بَعْدَ يَمِينِهِ او کوم غلام چې مولا د قسم نه روسته اخستې دې.هغه به نه ازاديږي . وَعَلَى هَذَا دغه ډول که دا ئې اووئيل قال كل مملوك لي چې څومره غلام هم زما سره دی إِذَا مِتُّ چې کله زه مړ شم فَهُوَ حُرٌّ نو دا به ازاد وی .نو هم به دا حکم وی .

تشریح:- «مملوك أملكه» دلته په متن کي دوې [دوه] قسمه الفاظ دی.- «① كل مملوك أملكه ② كل مملوك لي حربعد موتي» په دې دواړو صورتونوکي دصاحبينو رح په نيزد مړی په دريمه برخه کي هرمملوك آزاديږي .چه د مرګ په وخت کي وی .اګرچه د يمين په وخت کي نه وو.اودابويوسف رح په نيزصرف هغه آزاديږي .کوم چې د يمين په وخت کي وو.

## داماماناو رح دلائل

لَهُ د امام ابو يوسف رح دليل دا دې أَنَّ اللَّفْظَ حَقِيقَةٌ لِلْحَالِ چې دا لفظ په حقيقت کي د زمانه حال لپاره دې عَلَى مَا بَيَّنَّاهُ لکه څنګه چې مونږه وړاندې بيان کړی دی فَلَا يَعْتِقُ بِهِ مَا سَيَمْلِكُهُ نونه آزاديږي پرې هغه کوم چې روستو اخستې شوې وی وَلِهَذَا صَارَ هُوَ مُدَبَّرًا اوهم دا وجه ده.چه دده په قسم سره دا غلام مدبر ګرځي .[کوم چې دقسم په وخت کي موجود وو دُونَ الْآخَرِ بل [په کوم چې د قسم نه روسته ملکيت راغلې دی ] مدبرنه ګرځي وَلَهُمَا اود طرفينو رح دليل دادې أَنَّ هَذَا إِيجَابُ عِتْقٍ وَإِيصَاءٌ چې دا کلام موجب د عتق دې او وصيت دې حَتَّى اعْتُبِرَ مِنَ الثُّلُثِ تردې چې د دې اعتبار به دثلث نه کولې شی :وَفِي الْوَصَايَا تُعْتَبَرُ الْحَالَةُ الْمُنْتَظَرَةُ وَالْحَالَةُ الرَّاهِنَةُ.اوپه وصيتونوکي اعتبارد راروان او موجوده حالت کولای شی أَلَا تَرَى آيا دا نشی کتلې أَنَّهُ يَدْخُلُ فِي الْوَصِيَّةِ بِالْمَالِ مَا يَسْتَفِيدُهُ بَعْدَ الْوَصِيَّةِ چې د خپل مال د دريمې برخې وصيت کاوه په صورت کي د هغه مال هم حساب کولې شي .کوم چې د وصيت کاوه نه روسته تر مرګه پورې [ زمانه ] کي حاصل شوې وی

وَفِي الْوَصِيَّةِ لِأَوْلَادِ فُلَانٍ مَنْ يُولَدُ لَهُ بَعْدَهَا .او د فلاني سړی [ مثلا د زيد ] د اولاد لپاره د وصيت كاوه په صورت كي دده د موجوده اولاد نه علاوه د دې وصيت نه روسته پيدا كيدونكې اولاد هم په دې وصيت كې داخليږی.

حل اللغة: ① اعتاق: آزادول ② يستفيد: حاصليږی ③ المنتظرة: د كوم حالت چې انتظار كولای شی ④ ايصاء: وصيت كول]

تشریح:- «ولهما إن هذا إيجاب عتق وإيصاء» يعنی مولی قول دوې [دوه] حيثتونه لری .په يوحيثيت سره اعتاق دې يعني دده په قول سره عتق واقع كيږی .دهغه غلام كوم چې فی الحال دده په ملكيت كي موجود وی .خوچونكه دہ تعليق په بعدالموت پورې اوكړلو.نودده عتق ترمرګه پورې روستو شو.اوپه دوهم حيثيت سره دا وصيت دې.خكه چې دده عتق فی الحال نه واقع كيږی .بلكه دمرګ نه روسته واقع كيږی .اوچه دمرګ نه روسته واقع كيږی .نودا وصيت شو.اوچه وصيت شو.نو په وصيت كي هغه څيزهم شامليږی .كوم چې د وصيت په وخت كي وی .اوهغه هم كوم چې د وصيت نه روسته اودمرګ نه وړاندې حاصل شی .ددې امله كوم غلام چې ددې قول نه روسته حاصل شوې وی .په مرګ سره به هغه هم د مال د دريمې برخې نه آزاديږی

وَالْإِيجَابُ إِنَّمَا يَصِحُّ او د وصيت قول هم هغه وخت صحيح كيږی . مُضَافًا إِلَى الْمِلْكِ أَوْ إِلَى سَبَبِهِ چې كله دا قول ملك، يا د ملك سبب [لكه اخستل ياده ته هبه كيدل] اړخ ته منسوب كړې شی

حل اللغة: ① المتربصة: هغه حالت چې انتظار ئې كولای شی ② تملك: مالك جوړول]

تشریح:- دايجاب نه مراد د مولی دقول چې «فهو حر» حكم دې.چه د آزادئ واقع كيدل دی .نود ايجاب په دې قول به حكم هله مرتب كيږی .اوآزادی به حاصليږی .چه دآزادئ نسبت ملكيت ته اوشی .چه د مرګ په وخت كي زه دكوم غلام مالك يم.هغه دې آزاد وی .يا د ملكيت سبب ته نسبت اوكړی .چه ما كوم غلام اخستې وی .هغه دې آزاد وی.

فَمِنْ حَيْثُ أَنَّهُ إِيجَابُ الْعِتْقِ يَتَنَاوَلُ الْعَبْدَ الْمَمْلُوكَ نو په دې اعتبار سره چې په دې كي د ازادئ خبره ده.هغه مملوك غلام ته شامليږی اعْتِبَارًا لِلْحَالَةِ الرَّاهِنَةِ كوم چې د موجوده حالت په اعتبار سره وی فَيَصِيرُ مُدَبَّرًا .په دې چې فی الحال كوم غلام دده په ملكيت كي وی .هغه به مدبر كيږی حَتَّى لَا يَجُوزُ بَيْعُهُ په دې وجه به دده خرڅول هم جائز نه وی وَمِنْ حَيْثُ أَنَّهُ إِيصَاءٌ او په دې اعتبار سره چې وصيت دې يَتَنَاوَلُ الَّذِي دا به داسې غلام ته هم شامليږی يَشْتَرِيهِ اعْتِبَارًا لِلْحَالَةِ الْمُتَرَبِّصَةِ كوم چې ددې نه روسته اخلی .چه راروان ته هم ګډ شی وَهِيَ حَالَةُ الْمَوْتِ اوهغه حالت د مرګ دی

تشریح:- دمولی دكلام دوې [دوه] اعتبارات دی .كه دې ته اوګورې.چه دده په دې قول باندې آزادی واقع كيږی .نودا غلام مدبرګرځی .اود ده خرڅول هبه كول وغيره جائزنه دی .خوچونكه د آزادئ نسبت دمرګ نه روسته حالت ته شوې دې.اوآزادی چې واقع كيږی .نودمرګ نه روسته واقع كيږی .په دې اعتبارسره دا وصيت دې.نوچه وصيت شو.په دې كي هغه غلام هم داخليږی .كوم چې د ده د قول «انت حربعد موتی» نه روسته دده په ملكيت كي راغلې وی .

وَقَبْلَ الْمَوْتِ حَالَةُ التَّمَلُّكِ اسْتِقْبَالٌ مَحْضٌ او وړاندې د مرګ نه حالت د مالك جوړولو صرف استقبال دی يعنی دده اخری ژونده پورې چې كوم غلام هم په څه طريقه سره دده په ملكيت كي راشی .هغه به په دې حكم كي ګډ وی او دده د مرګ نه وړاندې حالت صرف استقبالی دې.يعنی راروان وخت داسې كيدل ممكن دی .چه دده په ملكيت كي څه نور غلامان هم راشی فَلَا يَدْخُلُ تَحْتَ اللَّفْظِ او دا هم ممكن ده.چه رانشی ،نو دا خبره د لفظ لاندې نه داخليږی . وَعِنْدَ الْمَوْتِ يَصِيرُ او د مولی د مرګ په وخت كي به دا ګڼرلې شی كَأَنَّهُ قَالَ: كُلُّ



مَمْلُوكٍ لِي چې لكه ده داسې وئيلی وی .چه زما واړه غلامان أَوْ كُلُّ مَمْلُوكٍ أَمْلِكُهُ يا هغه واړه غلامان چې د هغې زه مالك يم فَهُوَ حُرٌّ هغه ازاد دی .

تشریح:- استقبال محض په دې معنی سره دې.چه عتق يوقسم وصيت هم دې.اووصيت نافذ كيږی روسته د مرګه،نوپه دې اعتبارسره ورته استقبال محض وائی .

## په دواړو صورتونوكې وجه دفرق

بِخِلَافِ قَوْلِهِ په خلاف ددې قول بَعْدَ غَدٍ چې هر هغه غلام، چې د هغې زه مالك يم. هغه د سهار نه روسته ازاد دی عَلَى مَا تَقَدَّمَ لكه څنګه چې ددې نه وړاندې بيان شو لِأَنَّهُ تَصَرُّفٌ وَاحِدٌ ددې توپير وجه داده.چه دا قول صرف يوه خبره او يو تصرف دې وَهُوَ إِيجَابُ الْعِتْقِ وَلَيْسَ فِيهِ إِيصَاءٌ يعنی د ازادولو خبره ده.په دې كي د وصيت كاوه څه بيان نشته وَالْحَالَةُ مَحْضُ اسْتِقْبَالٍ دغه ډول د ملكيت د حاصلولو په حالت كي هم صرف په راروانه زمانه باندې معلق ده فَافْتَرَقَا دغه ډول په دواړو اقوالو كي توپير ښكاره دې

تشریح:- يعنی په ذكر شوی صورت كي هغه غلام هم د مرګ نه روسته آزاديږی .په كوم چې ملكيت د قسم نه روسته راغلې دې.خوپه دې قول كي چې اووائی .هرهغه غلام چې زه ئې مالك يم. سهار ته دې آزاد وی .په دې كي صرف هغه غلام آزاديږی .كوم چې دقسم په وخت كښې موجود وو.هغه غلام نه آزاديږی .چه د قسم نه روسته پرې ملكيت راشی .څكه چې دې صورت كي مسئله صرف يوحيثيت لری .چه عتق دې.اود وصيت معنی په كي نشته.څكه چې د مرګ ذكرپه كي نشته.نوهركله چې په كي د وصيت معنی نشته.نود قسم نه روسته چې په كوم غلام ملكيت راغلې وی .هغه نه آزاديږی .

وَلَا يُقَالُ دا اعتراض دې نشی كولې أَنَّكُمْ جَمَعْتُمْ بَيْنَ الْحَالِ وَالْإِسْتِقْبَالِ چې په دې بيان سره زمانه حال، او استقبال دواړه يوځائې كړې شوی دی لِأَنَّا نَقُولُ نو دا اعتراض به درست نه وی نَعَمْ لَكِنْ بِسَبَبَيْنِ مُخْتَلِفَيْنِ څكه چې اګرچه ددې دواړو اجتماع كيږی .خو په يو سبب سره نه ده.بلكه په دوې [دوه] سببونو سره جمع كيږی إِيجَابُ عِتْقٍ يعنی يو كلام ئې د ازادئ وَوَصِيَّةٍ او دوهم ئې د وصيت سره شامل كړې دې وَإِنَّمَا لَا يَجُوزُ ذَلِكَ بِسَبَبٍ وَاحِدٍ او دواړه زمانې جمع كول، په هغه صورت كي جائز نه دی .چه كله په يو سبب سره دواړه جمع كړې شی .

تشریح:- كه دلته څوك دا اعتراض اوكړی .چه تاسو د مولی په قول كي حال او استقبال دواړه جمع كړل حالانكه دده قول په حال كي حقيقت دې.داستقبال معنی خوقرينه غواړی .اودلته په لفظ كي قرينه لكه سين يا سوف نشته.نوددې نه ځواب دا دې.چه صحيح ده موږ حال اواستقبال جمع كړی دی .خوپه دوو مختلفو سببونو سره، يعنی دې قول ته چې نظركوو.نودا دحال تقاضا كوی .اوفی الحال چې كوم غلام موجود وی .د شرط په موجودګئ سره هغه آزادوی .خوچه د بعد موتی قيد په كي اولګولې شو.نودا د وصيت په معنی كي شو.اووصيت د استقبال لپاره وی .نوځكه حال او استقبال دواړه جمع شول.اوحال او استقبال په هغه صورت كي نه جمع كيږی .چه سبب ئې يو وی .

# باب العتق على جعل

ژباړه:- [ دا ] باب د مال په عوض سره د ازادولو [ په بيان كښې ] دې.

وَمَنْ أَعْتَقَ عَبْدَهُ عَلَى مَالٍ كه يو كسي خپل غلام د مال په عوض سره ازاد كړلو فَقَبِلَ الْعَبْدُ او غلام دا قبول هم كړلو عَتَقَ نو دې به هغه وخت [ فی الحال] ازاد وی وَذَلِكَ مِثْلَ أَنْ يَقُولَ مثلاً څوك خپل غلام ته ووايي أَنْتَ حُرٌّ عَلَى أَلْفِ دِرْهَمٍ چې ته د زرو روپو په بدله كي آزاد ئې أَوْ بِأَلْفِ دِرْهَمٍ يا د زرو روپو ادا كاوه په شرط با...

ازاد نې وَإِنَّمَا يُعْتَقُ بِقَبُولِهِ نو ددې ونيلو نه روسته غلام په دې صورت كې ازادېږي .چه كله غلام دا شرط قبول كړي لِأَنَّهُ مُعَاوَضَةُ الْمَالِ ځكه چې معاوضه اګر چې مالي ده بِغَيْرِ الْمَالِ خو په عوض كې مال نشته إِذِ الْعَبْدُ لَا يَمْلِكُ نَفْسَهُ ځكه چې غلام د خپل ذات مالك نه وي وَمِنْ قَضِيَّةِ الْمُعَاوَضَةِ او د معاوضه لپاره دا خبره ددې د لوازماتو ځنې ده ثُبُوتُ الْحُكْمِ بِقَبُولِ الْعِوَضِ لِلْحَالِ فوراً چې په عوض قبلولو سره حكم په هغه وخت كې ثابتيږي .چه قبض شي .كَمَا فِي الْبَيْعِ لكه څنګه چې په عقد بيع كې كيږي فَإِذَا قَبِلَ په دې وجه چې كوم وخت غلام داشرط قبول كړلو صَارَ حُرًّا هم هغه وخت څخه به د ازادئ حكم ثابتيږي

حل اللغة: ① يتنظم شامليږي ② شابهه مشابه شوه ③ الرق خالصه غلامي ]

تشريح:- كله چې مولى خپل غلام دمال په عوض كې آزاد كړي .اوغلام دا آزادي قبوله كړي .نوآزاديږي .ځكه چې دلته معاوضه د مال [چه غلام دې] ده.په هغه څيزكوم چې مال نه دې.ځكه چې دمال په بدله كې غلام ته آزادي ملاويږي .خوغلام د څه مالك نه دې.چه هغه څيزور كړي اوخپل ځان آزاد كړي .حالانكه معاوضه دا تقاضا كوي .چه حكم [دملكيت] دې هله ثابت شي .چه عوض في الحال قبض شي .لكه څنګه چې په بيع كې ملكيت هله ثابتيږي .چه قبضه راشي .

وَمَا شَرَطَ او كوم مال چې مشروط دې دَيْنٌ عَلَيْهِ هغه به په دې غلام باندې د پور په طور وي لكه څنګه چې په بيع كې كيږي حَتَّى تَصِحَّ الْكَفَالَةُ بِهِ تردې چې ددې مال كفالت هم صحيح دې[يعنى كه څوك دريم سړې د غلام د ارخه ددې قيمت ذمه دار او كفيل شي .نو جائز دى .]

تشريح:- وما شرط دين عليه مثلا مولى ورته اوونيل.چه ته دې په لس زره روپئ آزاد نې.نودغه لس زره روپئ په دې غلام باندې پور شو.تردې چې كه څوك ددې د وركولوذمه واري اخلي .نوصحيح ده.

بِخِلَافِ بَدَلِ الْكِتَابَةِ په خلاف د بدل كتابت، يعنى كه يو كس خپل غلام د مال په څه اندازه باندې مكاتب جوړكړلو.نو ددې مال كفالت او ذمه دارى قبلول صحيح نه دى لِأَنَّهُ ثَبَتَ مَعَ الْمُنَافِي وَهُوَ قِيَامُ الرِّقِّ ځكه چې په دې مال سره ددې مخالف يو امر موجود دې.چه په دې مكاتب كې تر اوسه پورې [ يعنى ددې بدل كتابت مكمل ادا كاوه پورې] د مملوكيت اثار پاته دى عَلَى مَا عُرِفَ لكه څنګه چې پخپل ځاى [ د مكاتب په بحث كې] بيان شوى دى

تشريح:- يعنى په بدل كتابت كې چې په مكاتب باندې څه وي .هغه پور نه وي .ځكه چې د پور تعريف دا دې چه هغه د ادا كولويا د دائن د معاف كاوه نه بغير نه ساقطيږي .اوپه مكاتب باندې بدل كتابت واجبيږي ددې باوجود چې دې غلام دې اوغلام د څه مالك نه وي .نوپه مكاتب باندې د بدل كتابت واجبول دخپل منافى سره چې رقيت دې جمع كول دى .اوچه مكاتب د بدل كتابت نه عاجز شي . نوهغه دوباره غلام ګرځى اويه كومه مسئله كې چې موږ بحث كوو.نوپه دې كښې دمولى د قول نه روسته غلام في الحال آزاديږي اودكوم مال په عوض چې نې دې آزاد كړې وي .هغه په ده باندې پور شو.بالفرض كه دې دهغې د ادا كولونه عاجزه هم شي .نودوباره غلام نه ګرځى .بلكه هم آزاد به وي . خو مديون به وي .

وَإِطْلَاقُ لَفْظِ الْمَالِ يَنْتَظِمُ أَنْوَاعَهُ اود كتاب په متن كې مصنف په .عبده على مال. كې لفظ د مال مطلق ساتلې دې او هيڅ قيد نې په دې كې نه دې لګولې مِنَ النَّقْدِ وَالْعَرَضِ وَالْحَيَوَانِ په دې وجه به دا نغدو روپو ، سامانونو او حيواناتو هر قسم مال ته شامليږي وَإِنْ كَانَ بِغَيْرِ عَيْنِهِ اګر چې دا مال معين نه وي لِأَنَّهُ مُعَاوَضَةُ [illegible] الْمَالِ ځكه چې دا مال د غيرمال عوض دې

[illegible] لاق لفظ المال يعنى چې غلام دمال په بدله كې آزاد كړى .نود مال لفظ هرقسم مال ته ورځى اوكه مځكه وى اوكه حيوان وى .اګرچه مال نې معين كړې نه وى .ځكه چې دا معاوضه دمال



ده په غير دمال باندې، ځكه چې غلام خوبه په خپله ازادئ كې مولى ته مال وركوي .اودهغه نه د ازادئ نه سوا بل څه نه اخلي .حالانكه آزادي مال نه دې.

فَشَابَهَ النِّكَاحَ وَالطَّلَاقَ لكه څنګه چې په نكاح كې د مهر اومال په عوض كې طلاق وَالصُّلْحَ عَنْ دَمِ الْعَمْدِ او د قصداً خون كاوه په صورت كې صلح كول، د مال ادا كاوه په صورت كې كيږي

تشريح:- يعنى لكه څنګه چې عقدنكاح كښې په مهركې مطلق مال واجبيږي .كه نقدرقم وي اوكه مځكه وي كه كور وي او كه فصل وغيره وي .نوپه تړلوسره د دمهر پور ادا كيداې شي .

وَكَذَا الطَّعَامُ وَالْمَكِيلُ وَالْمَوْزُونُ إِذَا كَانَ مَعْلُومَ الْجِنْسِ دغه ډول غله او د ناپ تول قابل څيزونو ته هم شامليږي په دې شرط چې ددې جنس معلوم وي وَلَا تَضُرُّهُ جَهَالَةُ الْوَصْفِ لِأَنَّهَا يَسِيرَةٌ البته چې ددې وصف مجهول [نا معلوم] وي .نو په دې سره هيڅ نقصان نه راځي .ځكه چې دا جهالت، او دا خرابي معمولي ، او قابل برداشت ده

تشريح:- يعنى كه مولى خپل غلام په داسې څيزآزاد كړى چې هغه تللې شي يا پيمانه كولې شي . خوچه جنس نې معلوم وي .مثلاً چې مولى ورته ونيلي وي .چه ته مې په دوې [دوه] منه ويجو باندې آزاد كړې.نوپه دې صورت كې جنس معلوم شو.اوكه د وريجو وصف مجهول وي نو هم څه باك نه لرى .ځكه چې په وصف كې دومره توپير نه راځى .خوچه جنس معلوم وي .زيات نه زيات يا به راسته وي اويا به لږې خرابې وي .ځكه چې دا لږ توپير دې.البته داسې جائزنه دى .چه مولى ورته دوې [دوه] منه روژې يادې كړې وي .اودې ورته دوې [دوه] منه تيپر واخلي .ځكه چې دلته جنس بدل شو.اودتيپرواو وريجو په مينځ كښې ډيرفرق دې.

### په عوض پورې د آزادئ تعليق كول

قال فرمائي وَلَوْ عَلَّقَ عِتْقَهُ بِأَدَاءِ الْمَالِ اوكه [مولى ] معلق كړلو عتق په ادا كولود مال پورې صَحَّ نوصحيح دې[دا تعليق] وَصَارَ مَأْذُونًا اواوګرځيدلودې ماذون [چه په تجارت كولوكې ورته اجازت ملاؤ شو] وَذَلِكَ مِثْلُ أَنْ يَقُولَ اودا صورت به داسې وي .چه ورته اووائى إِنْ أَدَّيْتَ إِلَيَّ أَلْفَ دِرْهَمٍ فَأَنْتَ حُرٌّ كه تا راكړې ماته زر روپئ نوته دې آزاد نې وَمَعْنَى قَوْلِهِ صَحَّ أَنَّهُ يُعْتَقُ عِنْدَ الْأَدَاءِ مِنْ غَيْرِ أَنْ يَصِيرَ مُكَاتَبًا اومعنى د قول د ماتن چې صحيح دې.يعنى دا[غلام] آزاديږي په وخت د ادا كولوكې بغيرددې نه چې اوګرځي مكاتب لِأَنَّهُ صَرِيحٌ فِي تَعْلِيقِ الْعِتْقِ بِالْأَدَاءِ ځكه چې دا [الفاظ] صريحى دې په تعليق د آزادولوكې په ادا كولو[د زرو روپوپورې] وَإِنْ كَانَ فِيهِ مَعْنَى الْمُعَاوَضَةِ فِي الِانْتِهَاءِ اګرچه په دې كې معنى د معاوضه ده.په آخركې عَلَى مَا نُبَيِّنُ إِنْ شَاءَ اللَّهُ تَعَالَى لكه چې موږ به نې بيان كړو انشاء الله . وَإِنَّمَا صَارَ مَأْذُونًا اودې ماذون اوګرځيدلو لِأَنَّهُ رَغَّبَهُ فِي الِاكْتِسَابِ ځكه چې مولى ورته ترغيب وركړلو په مزدورئ كاوه كې بِطَلَبِهِ الْأَدَاءَ مِنْهُ ځكه چې دې به ترې د معاوضې طلب كوي وَمُرَادُهُ التِّجَارَةُ اومراد ددې اجازت نه تجارت كول دى . دُونَ التَّكَدِّي خيرغوښتل نه دى مراد فَكَانَ إِذْنًا لَهُ دَلَالَةً نودا ده ته اذن شو[په تجارت كې ] دلالةً

حل اللغة: ① انتهاء: آخر، ② ماذون: هغه څوك چې اجازت ورته شوې وي ③ التكدى: خيرغوښتل]

تشريح:- (وإن كان فيه معنى المعاوضة) يعنى ددې مسئلې دوې [دوه] اړخونه دى .په ابتداء كې تعليق د عتاق دې.اوپه آخركې چې دې زر روپئ وركړى .نوپه دې كې عتق واقع شو خوپه معاوضه باندې.چونكه الفاظ په تعليق كې صريحى دى .نوځكه موږ وايو.چه دا غلام آزاديږي .چه كله شرط موجود شي .يعنى زر روپئ وركړي .

### د غلام دمال پيش كولونه روسته مولى دمال په قبض كولوباندې مجبوره كول

وَإِنْ أَحْضَرَ الْمَالَ اوكه غلام حاضر كړلو مال [مولى ته] أَجْبَرَهُ الْحَاكِمُ عَلَى قَبْضِهِ نومجبوره به نې كړى حاكم په

قبض كولودمال **وَعَتَقَ الْعَبْدُ** اوآزاد به شي غلام **وَمَعْنَى الْإِجْبَارِ فِيهِ وَفِي سَائِرِ الْحُقُوقِ** اومعنى دمجبوره كولوپه دې [عتق] اوټولوحقوقوكي دا ده **أَنَّهُ يَنْزِلُ قَابِضًا بِالتَّخْلِيَةِ** چې اوبه ګنړلې شي دې قبض كونكې په تخليه سره **وَقَالَ زُفَرُ رَحِمَهُ اللّٰهُ** اوفرمائي امام زفر رح **لَا يُجْبَرُ عَلَى الْقَبُولِ** چې نه به شي مجبوره كولې په قبلولو **وَهُوَ الْقِيَاسُ** اوهم دا [قول] قياس دې **لِأَنَّهُ تَصَرُّفُ يَمِينٍ** ځكه چې دا تصرف د قسم دې **إِذْ هُوَ تَعْلِيقُ الْعِتْقِ بِالشَّرْطِ لَفْظًا** ځكه چې دا [قول دمولى ] تعليق د آزادئ دې په شرط پورې په اعتبار دلفظ سره، **وَلِهَذَا لَا يَتَوَقَّفُ عَلَى قَبُولِ الْعَبْدِ** اوددې وجې [چه تعليق بالشرط دې] موقوف نه دې [قول دمولى ] په قبولود غلام باندې.[كه غلام ئې قبول نكړې نوبياهم تعليق دې] **وَلَا يَحْتَمِلُ الْفَسْخَ** اواحتمال د فسخ نه لرى [كه مولي اووائى .چه ماخپل قول فسخ كړلو.اود زرو روپو په ادا كولوبه دې نه آزاديږى ] كي **وَلَا جَبْرَ عَلَى مُبَاشَرَةِ شُرُوطِ الْأَيْمَانِ** اونشته مجبوره كول په شرطونود قسم **لِأَنَّهُ لَا اسْتِحْقَاقَ قَبْلَ وُجُودِ الشَّرْطِ** ځكه چې نشته استحقاق [اوواقع كيدل د جزاء] وړاندې د وجود دشرط نه **بِخِلَافِ الْكِتَابَةِ** په خلاف د كتابت[كه په كتابت كي مكاتب بدل كتابت حاضركړى نومولى به مجبورولې شي ] **لِأَنَّهُ مُعَاوَضَةٌ وَالْبَدَلُ فِيهَا وَاجِبٌ** ځكه چې كتابت معاوضه ده.اوبدل په هغې كي واجب وى .[اودا دمتن مسئله تعليق دې.په دې كي په وجود د شرط باندې مجبوره كولې نشى ]

**حل اللغة:** ① الاجبار: مجبوره كول ② التخلية: خالى كول

تشريح:- ﴿ومعنى الإجبارفيه﴾ په باب دعتق اوټولوحقوق العباد لكه بيع وغيره كي په قبض كولوباندې د مجبوره كولومطلب دا دې.چه په كوم څيزعقد منعقدشوې وى .هغه قابض ته په داسې حالت كي پريږدى .كه هغه ئې قبض كول اواخستل غواړى .نوڅه ممانعت او ركاوټ په كي نه وى .مثلاً زيدپه عمروباندې په سل روپئ كتاب خرڅ كړلو.اوعمرو ورته په دوكان كي سل روپئ كيخودلې.او روان شو . نو دا دده په دوكان كي سل روپئ پريښول تخليه ده.ځكه چې عمرودخپل دوكان نه دغه سل روپئ بغيرد څه ركاوټ نه اخستلې شى .البته دا ضرورى ده.چه تخليه به هله معتبره وى .چه كوم بدل ورته وركوى .هغه صحيح وى .اوكه هغه شان نه وى ځنګه چې د فريقينوپه مينځ كي په عقدكي ذكرشوې وى .نوبيا صرف تخليه قبض نشى تصور كولې.مثلا په ذكرشوى مثال زيدعمروته سل روپئ په دوكان كي كيخودلې .خوهغه جعلى وى .نودا تخليله معتبره نه ده.اوپه دې باندې دعمروقبضه نشى منلې.

## دجمهوراحنافو رح دلائل

**وَلَنَا** اوزمونږدليل دا دې **أَنَّهُ تَعْلِيقٌ نَظَرًا إِلَى اللَّفْظِ** چې دا تعليق دې په نظركولوسره لفظ ته [ځكه چې په لفظ كي عتق معلق كړې دې په ادا كولودمال پورې] **وَمُعَاوَضَةٌ نَظَرًا إِلَى الْمَقْصُودِ** اومعاوضه ده [يعني عتق د مال په بدله كي حاصليږى ] په نظركولوسره مقصود ته،[دمقصود نه مراد عتق دې **لِأَنَّهُ مَا عَلَّقَ عِتْقَهُ بِالْأَدَاءِ إِلَّا لِيَحُثَّهُ عَلَى دَفْعِ الْمَالِ** ځكه چې مولى نه دې معلق كړې عتق دده [غلام] په ادا كاوه [دمال] پورې مګرددې لپاره چې ترغيب وركړى ده[غلام] ته په وركولود مال [مولى ته] **فَيَنَالَ الْعَبْدُ شَرَفَ الْحُرِّيَّةِ** نو[چه غلام مال وركړى ] حاصل به كړى شرافت د آزادئ **وَالْمَوْلَى الْمَالَ بِمُقَابَلَتِهِ بِمَنْزِلَةِ الْكِتَابَةِ** اومولى [به حاصل كړى ] مال په مقابله د عتق كي ،[نودا معامله] پشان د كتابت شوه.*.] لكه ځنګه چې په كتابت كي مكاتب بدل كتابت وركړى اوعتق حاصل كړى او مولى ته مال حاصل شى ] **[وَلِهَذَا كَانَ عِوَضًا فِي الطَّلَاقِ فِي مِثْلِ هَذَا اللَّفْظِ حَتَّى كَانَ بَائِنًا** اوددې امله دې عوض په باب دطلاق كي په مثل د داسې لفظ كي ،نوكيږى [دغه لفظ] طلاق بائن **فَجَعَلْنَاهُ تَعْلِيقًا فِي الِابْتِدَاءِ** نوموږ اوګرځولو دا قول تعليق په ابتداء كښې [اوپه تعليق كي دا قاعده ده.چه كله شرط موجود شي .نوجزاء به واقع كيږى .دشرط د وقوع نه وړاندې جزاء نه واقع كيږى .] **عَمَلًا بِاللَّفْظِ** د لپاره دعمل كولوپه لفظ باندې[ځكه چې لفظ په تعليق كي صريحى دې] **وَدَفْعًا لِلضَّرَرِ عَنِ الْمَوْلَى** او لپاره د



لرې كولود ضرر د مولى نه تردې [چه موږ دا تعليق اوګرځوو نوعتق فى الحال واقع نشو]. **حَتَّى لَا يَمْتَنِعَ عَلَيْهِ بَيْعُهُ** فائده ئې دا شوه.چه نشى منع كولې دې [مولى ] د خرڅولوده [غلام] نه **وَلَا يَكُونُ الْعَبْدُ أَحَقَّ** اونه به غلام اختيارمندوى **بِمَكَاسِبِهِ** په خپل كسب كي [ځكه چې عتق خوبه د شرط د وجود نه روسته واقع كيږى .اوشرط چې مولى ته دمال وركول دى هغه نه دې موجود شوې] **وَلَا يَسْرِي إِلَى الْوَلَدِ الْمَوْلُودِ قَبْلَ الْأَدَاءِ** اونه شامليږى آزادى هغه بچى ته چې پيدا شوې وى وړاندې د ادا كولود مال نه وړاندې غلام دې.اود غلام اولاد دمولى ملكيت وى **وَجَعَلْنَاهُ مُعَاوَضَةً فِي الِانْتِهَاءِ عِنْدَ الْأَدَاءِ** اوموږ اوګرځوله دا معامله معاوضه په آخركي [چه كله ورته غلام په خپلې آزادئ كي مال وركړى .نودا عتق واقع شو په مقابله دمال كي .] لپاره د لرې كولود ضرر د غلام نه،[ځكه كه غلام مولى ته مال حاضركړى .اوبيا هم دې نه آزاديږى **دَفْعًا لِلْغُرُورِ عَنِ الْعَبْدِ** نوپه دې كي غلام ته ضرر دې چې د عوض وركولوباوجود ورته آزادى نه حاصليږى ] **حَتَّى يُجْبَرَ الْمَوْلَى عَلَى الْقَبُولِ** ددې امله به مجبوره كولاى شى مولى په قبلولو[د عوض باندې **فَعَلَى هَذَا يَدُورُ الْفِقْهُ** اوهم په دې باندې د فقه دارومداردې **وَيُخَرَّجُ الْمَسَائِلُ** اودمسئلو تخريج [راويستل] دى

**حل اللغة:** ① الحث: ترغيب وركول،حركت وركول ② الانتهاء: آخرى ③ الابتداء: پيل ، اول]

**تشريح:**- ﴿ولهذا كان عوضا فى الطلاق﴾ يعنى كه هم دا مسئله په باب دطلاق كي پيښه شى .چه خاوند خپلې ښځې ته اووائى .كه تاماته مثلاً دوې [دوه] زره روپئ راكړې نوته دې طلاقه ئې.چه دې لفظ ته نظراوكړې شى .نودا تعليق دطلاق دې.اوچه په آخركي كله ښځه خاوند ته دوې [دوه] زره روپئ وركړى .نودا طلاق په عوض دمال كي شو.اوكوم طلاق چې په عوض دمال كي واقع شى .نوهغه طلاق بائن وى .نواوګورئ په مسئله د طلاق كي هم په اول كي تعليق دطلاق دې.اوپه آخركي خلع ده.دغه ډول په دې مسئله دعتق كي اول تعليق دې اوپه آخركي عتق په عوض دمال دې.

**نَظِيرُهُ الْهِبَةُ بِشَرْطِ الْعِوَضِ** نظير ددې هبه ده په شرط د عوض،

**تشريح:**- ﴿نظيره الهبة بشرط العوض﴾ مثلازيدعمروته اووئيل.چه دا كتاب درته بښم.خوته به راته فلانې كتاب راكوې.نوچه اول ته نظراوكړې شى .دا هبه ده.خوچه آخرته اوكتلې شى .چه ددې هبهٔ په بدله كي ترې بل كتاب اخلى .نودا معاوضه ده.

## دځينبعوض قبلولونه روسته دپاته عوض په اخستلومجبوره كولوحكم

**وَلَوْ أَدَّى الْبَعْضَ** اوكه ده [غلام] ادا كړلو بعضې [عوض كوم چې پرې مولى مقرر كړې وو چې كه تا دا راكړلو.نوته به آزاد ئې] **يُجْبَرُ عَلَى الْقَبُولِ** نومجبوره كولې به شي په قبلولو[دپاته عوض] **إِلَّا أَنَّهُ لَا يَعْتِقُ** خودومره ده چې دا [غلام] به نه آزاديږى **مَا لَمْ يُؤَدِّ الْكُلَّ** ترڅوچه ئې نه وى ادا كړې كل [عوض] **لِعَدَمِ الشَّرْطِ** د امله دعدم [وجود] د شرط[ځكه چې عتق به هله واقع كيږى .چه كامل شرط موجود شى .دبعضې شرط په وجود سره عتق نه واقع كيږى ] **كَمَا إِذَا حَطَّ الْبَعْضَ** لكه ځنګه چې [مولى ] كم كړى بعضې [عوض] او[غلام] ادا كړى پاته [نوفى الحال نه آزاديږى **وَأَدَّى الْبَاقِيَ ثُمَّ لَوْ أَدَّى أَلْفًا اكْتَسَبَهَا قَبْلَ التَّعْلِيقِ** بيا كه ادا ئې كړې زر روپئ چې ګټلې ئې وې وړاندې د تعليق نه **رَجَعَ الْمَوْلَى عَلَيْهِ** نورجوع به كوى مولى په ده باندې يعنى هغه روپئ كومې چې ئې دتعليق نه وړاندې ګټلى وى .هغه به ترې واخلى ] **وَعَتَقَ لِاسْتِحْقَاقِهَا** اوددې به آزاد شى .د امله د استحقاق د آزادئ نه **وَلَوْ كَانَ اكْتَسَبَهَا بَعْدَهُ** اوكه ده [غلام] ګټلې وى روسته د تعليق نه **لَمْ يَرْجِعْ عَلَيْهِ** نونه به اخلى ترې [مولى ] دغه پيسې، **لِأَنَّهُ مَأْذُونٌ مِنْ جِهَتِهِ بِالْأَدَاءِ مِنْهُ** ځكه چې غلام ته [دتعليق نه پس] دادا كولواجازت ملاؤ شوې دې.[چه ته ګټه كوه.اوماته خپل بدل كتابت راكوه] **ثُمَّ الْأَدَاءُ فِي قَوْلِهِ إِنْ أَدَّيْتَ يَقْتَصِرُ عَلَى**

المخلس بيا دا ادا كول د مولى په قول كي د «إن أديت» دا قول دمجلس پورې خاص دي.[كه غلام دا شرط قبول كړلو.نومكاتب به شي .اوكه قبول ئې نكړلو.نومكاتب نه ګرځى ] لِأَنَّهُ تَخْيِيرٌ خكه چې دا غلام ته اختيارور كول دى ..[آزادى نه ده.بلكه بدل كتابت په عوض د آزادئ حاصلولواختيار ورته وركوى .كه ته غواړې.نوماته بدل كتابت راكړه.اوآزادبه شي.اوكه بدل كتابت راكولوته تيارنه ئې.نوهم دغه ډول به غلام ئې] وَفِي قَوْلِهِ اوپه قول د مولى كي إِذَا أَدَّيْتَ لَا يَقْتَصِرُ چې «إذا أديت» نودا قول په مجلس پورې خاص نه دي لِأَنَّ إِذَا تُسْتَعْمَلُ لِلْوَقْتِ بِمَنْزِلَةِ مَتَى خكه چې «إذا» د وخت لپاره استعماليږي .لكه څنګه چې «متى» د وخت لپاره استعماليږي.

تشريح:- مسئله دژباړې اواضافى قيوداتونه حل كيداې شي

## د «انت حربعدموتي على ألف» حكم

وَمَنْ قَالَ لِعَبْدِهِ: أَنْتَ حُرٌّ بَعْدَ مَوْتِي عَلَى أَلْفِ دِرْهَمٍ اوچاچه اووئيل خپل غلام ته چې ته آزاد ئې زماد مرګ نه روسته په زر روپئ فَالْقَبُولُ بَعْدَ الْمَوْتِ نوقبول به معتبر وى روسته دمرګ نه.[كه غلام في الحال د زر روپو په مقابله كي خپل تدبير قبول هم كړى .خوبيا هم نه مدبر كيږى لِإِضَافَةِ الْإِيجَابِ إِلَى مَا بَعْدَ الْمَوْتِ د امله داضافت د قبلولو هغه زمانې ته چې روستو ده د مرګ نه.[قبولوالې به ئې د مرګ نه روسته معتبر وى .چه دمرګ نه روسته د زرو روپو په مقابله كي خپل تدبير قبول كړى .دې مدبرګرځى ] فَصَارَ كَمَا إِذَا قَالَ أَنْتَ حُرٌّ غَدًا بِأَلْفِ دِرْهَمٍ نودا داسې شوه لكه چې كله ووايي ته آزاد ئې صباته په زر روپئ باندې،[نوپه دې صورت كي هم كه غلام فى الحال قبول والې اوكړى نه آزاديږى ] بلكه صباته به آزاديږى بِخِلَافِ مَا إِذَا قَالَ أَنْتَ مُدَبَّرٌ عَلَى أَلْفِ دِرْهَمٍ په خلاف دهغه صورت كي چې ووايي ته مدبرئې په زر روپئ باندې،[اود بعد موتى ذكرپه كي اونكړى .نوپه دې صورت كي كه غلام د زر روپو په عوض تدبير قبول كړى .دې مدبرګرځى ] حَيْثُ يَكُونُ الْقَبُولُ إِلَيْهِ فِي الْحَالِ خكه چې دقبلولواختيارحاصل دې غلام ته فى الحال لِأَنَّ إِيجَابَ التَّدْبِيرِ فِي الْحَالِ چې دې فى الحال تدبير قبول كړى .نويكارده چې فى الحال پرې زر روپئ وركول واجب شوې هم وو] إِلَّا أَنَّهُ لَا يَجِبُ الْمَالُ لِقِيَامِ الرِّقِّ .قَالُوا لَا يُعْتَقُ عَلَيْهِ خو نه واجبيږى په ده باندې مال [چه زر روپئ دى فى الحال] د امله د وجود د غلامئ نه، [متاخرينو رح] عالمانوفرمائيلى دى .چه نه آزاديږى په دې قول [چه انت حربعد موتى على ألف] فِي مَسْأَلَةِ الْكِتَابِ په مسئله دكتاب كي وَإِنْ قَبِلَ بَعْدَ الْمَوْتِ اګرچه قبول والې [د تدبير] اوكړى روسته دمرګه لَمْ يُعْتِقْهُ الْوَارِثُ ترخوچه نه وى آزاد كړې وارثانو لِأَنَّ الْمَيِّتَ لَيْسَ بِأَهْلٍ لِلْإِعْتَاقِ ،وَهَذَا صَحِيحٌ خكه [چه كله دې مړ شو .نو] مړې اهل د آزادولونه دې.اودا قول [چه دمرګ نه روسته كه غلام تدبير قبول كړى .نه مدبركيږى ] صحيح دي

تشريح:- مسئله به انشاء الله د ژباړې اود اضافى قيوداتو نه حل شي .

قَالَ امام محمدپه جامع صغيركي ] فرمائيلى دى وَمَنْ أَعْتَقَ عَبْدَهُ عَلَى خِدْمَتِهِ أَرْبَعَ سِنِينَ اوچاچه آزاد كړلو غلام خپل په [مقابله د] خدمت خپل څلور كاله،[چه ته به څلوركاله زما خدمت كوې.نوآزادبه شي] فَقَبِلَ الْعَبْدُ فَعَتَقَ نوقبول كړلو غلام [د مولى شرط] آزاد شو[غلام فى الحال] ثُمَّ مَاتَ مِنْ سَاعَتِهِ بيا مړ شو [مولى ] هم په دغه وخت فَعَلَيْهِ قِيمَةُ نَفْسِهِ فِي مَالِهِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رحمهما الله نوپه ده [غلام] باندې قيمت د خپل خان دې [مثلاً لس زره روپئ دده قيمت وو.نوهغه لس زره به وارثانوته وركوى ] په مال خپل كي ،[خكه چې ده ته آزادى ملاؤ شوې ده.نواوس دې مالك جوړيدې شى .نوګټيه دې اوكړى .اووارثانوته دې خپل قيمت وركړى .خودا مسئله] په نيزد امام ابوحنيفه او ابويوسف رح ده وَقَالَ مُحَمَّدٌ رحمه الله [.اوفرمائى محمد رح عَلَيْهِ قِيمَةُ خِدْمَتِهِ أَرْبَعَ سِنِينَ په ده[غلام] باندې قيمت د څلورو كالود خدمت دې مثلاً ده دڅلورو كالود خدمت زر



روپئ جوړيږى .نووارثانوته به زر روپئ وركوى ] أَمَّا الْعِتْقُ فَلِأَنَّهُ جَعَلَ الْخِدْمَةَ فِي مُدَّةٍ مَعْلُومَةٍ عِوَضًا هرچه آزادى ده.[نوهغه څكه حاصله شوې ده.چه] مولى اوګرځولو خدمت په موده معلومه كي بدل [د آزادئ] نوتعلق به ساتى آزادى دقبلولو د غلام سره[چه غلام دا شرط قبول كړى فَيَتَعَلَّقُ الْعِتْقُ بِالْقَبُولِ نوآزادى به ورته حاصله شى ]او[د غلام د اړخه ] قبولوالې موجود شو وَقَدْ وُجِدَ [چه هغه د خپلې آزادئ په عوض كي دڅلوروكالوخدمت ته غاړه كيخودله] وَلَزِمَهُ خِدْمَةُ أَرْبَعِ سِنِينَ؛ لِأَنَّهُ يَصْلُحُ عِوَضًا اولازم شو پرې خدمت د څلورو كالو،څكه چې خدمت صلاحيت لرى چې شى عوض [دآزادئ]

تشريح:- مطلب انشاءالله دژباړې اواضافى قيوداتونه اخستې شي .

فَصَارَ نودا مسئله داسې شوه كَمَا إِذَا أَعْتَقَهُ عَلَى أَلْفِ دِرْهَمٍ، ثُمَّ إِذَا مَاتَ الْعَبْدُ لكه چې آزاد ئې كړى په بدله د زر روپواوبيا مړ شى غلام [وړاندې د ادا كولود عوض نه] فَالْخِلَافِيَّةُ فِيهِ بِنَاءٌ عَلَى خِلَافِيَّةٍ أُخْرَى اواختلاف په دې مسئله كي مبنى دې په اختلاف بل باندې وَهِيَ أَنَّ مَنْ بَاعَ نَفْسَ الْعَبْدِ مِنْهُ بِجَارِيَةٍ بِعَيْنِهَا اوهغه [اختلاف] دا دې.چه څوك [مولى ] واخلى نفس د غلام په يوه وينځه معلومه باندې ثُمَّ اسْتُحِقَّتِ الْجَارِيَةُ بيا مستحقه شوه وينځه [يعنى بل چا پرې د خپل وينځتوب دعوى اوكړله أَوْ هَلَكَتْ اوقاضى دهغه لپاره فيصله اوكړله] يا هلاكه شوه يَرْجِعُ الْمَوْلَى عَلَى الْعَبْدِ بِقِيمَةِ نَفْسِهِ عِنْدَهُمَا نو رجوع به كوى [يعنى اخلى به] مولى په غلام باندې قيمت دده [غلام ] په نيزد شيخينو رح وَبِقِيمَةِ الْجَارِيَةِ عِنْدَهُ وَهِيَ مَعْرُوفَةٌ او[اخلى به مولى د غلام نه] قيمت د وينځه په نيزد محمد رح اوهغه وينځه معلومه ده. وَوَجْهُ الْبِنَاءِ أَنَّهُ [نو قيمت لګول به ئې هم ګران نه وى ] اووجه د بناء [دمتن د اختلاف د وينځې په اختلاف] دا ده كَمَا يَتَعَذَّرُ تَسْلِيمُ الْجَارِيَةِ بِالْهَلَاكِ وَالِاسْتِحْقَاقِ چې لكه څنګه متعذر دى حواله كول د وينځې [په اصل مختلف فيه مسئله كي ] د امله د هلاكت او يا د استحقاق نه [چه وينځه دبل چا وه] يَتَعَذَّرُ الْوُصُولُ إِلَى الْخِدْمَةِ بِمَوْتِ الْعَبْدِ نودغه ډول متعذر دى رسيدل خدمت اخستلو ته [چه مولى د غلام نه څلوركاله خدمت واخلى ] په مرګ د غلام سره[څكه چې خادم مړ شو.نوفاعل دخدمت پاتې نشو] وَكَذَا بِمَوْتِ الْمَوْلَى فَصَارَ نَظِيرَهَا اودغه ډول په مرګ د مولى [څكه چې مخدوم مړ شو.نومحل دخدمت پاتې نشو] اواوګرځيده دا مسئله [دغلام دمرګ] نظيرد دې [مسئلې د مرګ د مولى ]

تشريح:- دژباړې اواضافى قيوداتونه مسئله حل كيداې شي .

## د «أعتق أمتك على ألف درهم عليّ على أن تزوجنيها» حكم

وَمَنْ قَالَ لِآخَرَ اوڅوك [زيد] چې ووايي بل [بكر] ته أَعْتِقْ أَمَتَكَ عَلَى أَلْفِ دِرْهَمٍ عَلَى أَنْ تُزَوِّجَنِيهَا آزاده كړه وينځه خپله زر روپئ به وى په ما باندې په دې شرط چې په نكاح كوې به ئې ماته فَفَعَلَ اوهغه [مولى دغه شان] اوكړلو[چه وينځه ئې آزاده كړه. فَأَبَتْ أَنْ تَتَزَوَّجَهُ روسته [د آزاديدو نه] هغې [وينځې انكاراوكړلو چې نكاح اوكړى ده [زيد] سره فَالْعِتْقُ جَائِزٌ نوعتق واقع شو وَلَا شَيْءَ عَلَى الْآمِرِ اونشته څه شى په امركوونكى [زيد] باندې، لِأَنَّ مَنْ قَالَ لِغَيْرِهِ أَعْتِقْ عَبْدَكَ عَلَى أَلْفِ دِرْهَمٍ عَلَيَّ څكه چې څوك ووايي بل ته آزاد كړه غلام خپل په زر روپئ چې په ما به وى [دغه زر روپئ ] فَفَعَلَ اوهغه دغه اوكړلو.(يعنى غلام ئې آزاد كړو لَا يَلْزَمُهُ شَيْءٌ نونه لازميږى په ده [حكم كونكى ] څه شى وَيَقَعُ الْعِتْقُ عَلَى الْمَأْمُورِ اوواقع كيږى عتق د هغه چا د اړخه چې حكم ورته شوې وى بِخِلَافِ مَا إِذَا قَالَ لِغَيْرِهِ طَلِّقِ امْرَأَتَكَ عَلَى أَلْفِ دِرْهَمٍ عَلَيَّ په خلاف دهغه صورت چې ووايي بل ته طلاق وركړه ښځې خپلې ته په زر روپئ چې په ما به وى فَفَعَلَ اوهغه اوكړلو حَيْثُ يَجِبُ الْأَلْفُ عَلَى الْآمِرِ نو واجبيږى زر روپئ په حكم كونكى باندې أَنَّ اشْتِرَاطَ الْبَدَلِ عَلَى الْأَجْنَبِيِّ فِي الطَّلَاقِ څكه چې شرط كول د بدل [چه ددې كار په بدل كي دا كار اوكړه]په پردى باندې په طلاق كي جائز دي.وَفِي الْعَتَاقِ لَا يَجُوزُ اوپه عتاق كي جائز نه دي وَقَدْ قَرَّرْنَاهُ مِنْ قَبْلُ اويقيناً مونږ واضح كړې دي توپير وړاندې ددې نه.

تشریح:- ﴿وقد قررناه من قبل﴾ صورت د مسئلې یو دي.خوپه عتاق کې به په حکم کونکی دغلام د ازادئ قیمت چې زر روپۍ دی نه واجبیږی اوپه طلاق کې پرې واجبیږی .وجه د توپیر دا ده.چه خپل ملکیت د بل دمال په بدله کې مشروط کول صحیح نه دی .نوهرکله چې شرط صحیح نه شو،نوشرط باطل شو.اوچه مامور خپله وینځه آزاده کړی .هغه آزاده شوه،اود طلاق په مسئله کې په حکم کونکی باندې زر روپۍ ځکه لازمیږی .چه طلاق د بل چا په ملکیت پورې مشروط کول صحیح دی .لکه څنګه چې په خلع کې ښځه سړی ته اووائی .چه زه تاته خپل مهرمعاف کوم.خوماته طلاق راکړه.اوهغه طلاق ورکړلو.نوطلاق واقع شو،اود ښځې مهرساقط شو.نودا مسئله د طلاق په خلع باندې قیاس کولې شی .اوپه حکم کونکی به زر روپۍ لازم شی .په دې بیان سره په دواړو صورتونوکې توپیر ښکاره شو.

د ﴿اعتق امتك عنى على الف درهم﴾ حکم

| |
|---|
| وَلَوْقَالَ أَعْتِقْ أَمَتَكَ عَنِّي وکه ووایي [زید بکرته] آزاده کړه وینځه خپله زما دا‌ړخه عَلَى أَلْفِ دِرْهَمٍ په زر روپۍ وَالْمَسْأَلَةُ بِحَالِهَا [باقی ] مسئله په خپل حالت ده یعنی په دې شرط چې ددې نکاح به زما سره کوي.اوهغه آزاده کړه.اود آزادئ نه روسته وینځې ده سره د نکاح کولونه انکار اوکړلو] ! قُسِمَتِ الْأَلْفُ عَلَى قِيمَتِهَا نوتقسیمولې به شي زر روپۍ په قیمت ددې [مثلاً چې شپږ سوه روپۍ وی] وَمَهْرِ مِثْلِهَا اوپه مهر مثل ددې [وینځې ] فَمَا أَصَابَ الْقِيمَةَ نوڅه چې په مقابله د قیمت [دوینځې ] شی أَدَّاهُ الْآمِرُ ادا به ئې کړی حکم کونکې وَمَا أَصَابَ الْمَهْرَ اوهغه چې په مقابله د مهرکې شی بَطَلَ عَنْهُ باطله شوه [هغه حصه] لِأَنَّهُ لَمَّا قَالَ عَنِّي ځکه چې هرکله ده اووئیل ﴿ آزاده کړه] زما دا‌ړخه تَضَمَّنَ الشِّرَاءَ اقْتِضَاءً نو دې ذمه وار شو د اخستلو [د وینځې ] په تقاضا عَلَى مَا عُرِفَ دهغه حکم کوم چې پیژندلې شوې دې [په اصولوکې ] وَإِذَا كَانَ كَذَلِكَ اوهرکله چې داسې شوه [یعنی چې دا په معنی د اخستلوکې شوه] فَقَدْ قَابَلَ الْأَلْفَ بِالرَّقَبَةِ شِرَاءً وَبِالْبُضْعِ نِكَاحًا نوده مقابله کړې زر روپۍ د غلام سره په د اخستلوپه اعتبار اود بضع سره د نکاح په اعتبار فَانْقَسَمَ عَلَيْهِمَا نوویش شوې [دغه زر روپۍ ] وَوَجَبَتْ حِصَّةُ مَا سَلِمَ لَهُ وَهُوَ الرَّقَبَةُ اوواجب شوه برخه دهغه چې حواله کړې شوه ده ته اوهغه آزادی ده. وَبَطَلَ عَنْهُ مَا لَمْ يَسْلَمْ وَهُوَ الْبُضْعُ اوباطله شوه دده [د ذمه] نه هغه چې حواله نشوه ده ته چې بضع ده یعنی نکاح ئې ورسره اونکړه] فَلَوْ زَوَّجَتْ نَفْسَهَا مِنْهُ که په نکاح کې ورکړلووینځې آمرته خان خپل لَمْ يَذْكُرْهُ .[نو [امام محمد ﷫ په جامع صغیرکې ﴾ نه ئې دې ذکرکړې حکم ددې صورت وَجَوَابُهُ خوځواب ئې دا دې أَنَّ مَا أَصَابَ قِيمَتَهَا چې کوم په مقابله د قیمت د وینځه کې راشی سَقَطَ فِي الْوَجْهِ الْأَوَّلِ نوپه اوله مسئله کې [یعنی چې دا ئې نه وی ونیلې چې زما دا‌ړخه ئې آزاده کړه] به ساقط شی . یعنی غلام به آزاد شی .اود آمر څخه به تاوان نشی اخستلې] وَهِيَ لِلْمَوْلَى فِي الْوَجْهِ الثَّانِي اود وینځې قیمت به د مولي وی په دویمه مسئله کې [چه ورته ئې ونیلې وی .زما د اړخه ئې آزاده کړه.] وَمَا أَصَابَ مَهْرَ مِثْلِهَا كَانَ مَهْرَهَا فِي الْوَجْهَيْنِ اوهغه چې په مقابله دمهرمثل دوینځې کې راشی .نوهغه د وینځې لپاره مهر شو په دواړو صورتونو کې [که دعنی لفظ ئې ونیلې وی اوکه نه] |

تشریح:- ﴿لأنه لما قال عنى تضمن﴾ صورت د مسئلې دا دې.چه زید بکرته اووئیل.چه ته زما دا‌ړخه د زر روپو په مقابله کې خپله وینځه آزاده کړه.خوپه دې شرط چې ددې نکاح به ما سره کوې.اوبکرد زید په وینا باندې وینځه آزاده کړه.نوهغه زر روپۍ به د وینځې په قیمت او مهرباندې تقسیمیږی .اوزیدبه خامخا د وینځې قیمت بکرته ورکوی .ځکه چې د ﴿عنى ﴾ لفظ د اخستلو تقاضا کوی .دا داسې شوه لکه چې زید بکرته اووئیل.چه ته خپله وینځه د زرو روپوپه مقابله کې خرڅه کړه.اوبیا زما دا‌ړخه وکیل شه اوهغه آزاده کړه.ځکه چې دیوکس د غلام یا وینځې آزادولوکې وکالت صحیح کیږی .ددې امله به د زید دکلام د تقاضا په بناء



باندې اول اخستل اومنلې شی .اوبیا به عتق واقع شی .نود زید دکلام چې د څه تقاضا کوی .دهغې نه دا خبره هم واضحه شوه.چه ده دوې [دوه] خبرې کړی دی .یوه دا چې وینځه آزاده کړه.اوبله دا چې ماسره ئې نکاح اوکړه.نودغه زر روپۍ به په دوو برخو ویش کولې شی .څه به د آزادئ په مقابله کې وی.اوڅه به د نکاح په مقابله کې وی .اوچه د آزادئ نه روسته وینځه د نکاح کاوه نه انکار اوکړی .نودهغې دمهرمثل چې څه قیمت جوړیږی .هغه به د زرو روپو نه ساقط شی .ځکه چې نکاح اونشوه. نو چې د نکاح په مقابله کې کوم قیمت راځی .هغه به ساقط شی .

﴿فلوزوجت نفسها منه﴾ یعنی په متن کې چې کومې دوې [دوه] مسئلې ذکرشوې په دې دواړوکې وینځې د نکاح کولونه انکار کړې دې.په دې دواړو مسئلو کې یو صورت بل هم دې.هغه دا چې وینځه د آمر سره نکاح اوکړی .نوپه اوله مسئله کې چې دا ئې ورته نه وی ونیلې.چه زما دا‌ړخه ئې آزاده کړه.اومامور آزاده کړه.نوپه آمرباندې ضمان نشته.ځکه چې په عتاق کې خپل ملکیت د بل دمال په بدله کې مشروط کول صحیح نه دی .نوهرکله چې شرط صحیح نه شو،نوشرط باطل شو.اوچه مامور خپله وینځه آزاده کړی .هغه آزاده شوه،

﴿ وهی للمولی فی الوجه الثانی﴾ یعنی په دویمه مسئله کې چې د طلاق مسئله ده.نوپه کې طلاق د بل چا په ملکیت پورې مشروط کول صحیح دی .لکه څنګه چې په خلع کې ښځه سړی ته اووائی .چه زه تاته خپل مهرمعاف کوم.خوماته طلاق راکړه.اوهغه طلاق ورکړلو.نوطلاق واقع شو،اودطلاق ورکولوپه بدله کې چې په زیدآمرباندې کوم قیمت راځی .هغه به مولی ته ورکوی .

## باب التدبیر

ژباړه:- دا باب د مدبر کولو په بیان کښې دې.

**د مدبر تعریف**

| |
|---|
| إِذَا قَالَ الْمَوْلَى لِمَمْلُوكِهِ إِذَا مِتُّ کله چې ووایي مولی خپل غلام ته کله چې زه مړ شم فَأَنْتَ حُرٌّ نوته آزاد ئې أَوْ أَنْتَ حُرٌّ عَنْ دُبُرٍ مِنِّي یاته دې آزاد ئې ورستو زما [دمرګ] نه أَوْ أَنْتَ مُدَبَّرٌ یا ته مدبر ئې أَوْ قَدْ دَبَّرْتُكَ یا مامدبر کړې ته فَقَدْ صَارَ مُدَبَّرًا نوا وګرځیدلو [دې] مدبر لِأَنَّ هَذِهِ الْأَلْفَاظَ صَرِيحٌ فِي التَّدْبِيرِ ځکه چې دا الفاظ په تدبیرکې صریحی دی . فَإِنَّهُ إِثْبَاتُ الْعِتْقِ عَنْ دُبُرٍ ځکه چې دا ثابتول دتدبیر دی ورسته، [دمرګ نه] |

تشریح:- ﴿لأن هذه الألفاظ﴾ دتدبیر الفاظ په درې قسمه دی .① هغه الفاظ چې په اضافت د عتق دلالت کوی لکه ﴿اعتقك یا حررتك﴾ وغیره ② هغه الفاظ چې په تعلیق د عتق دلالت کوی لکه ﴿إن مت فانت حر﴾ وغیره ③ هغه الفاظ چې په وصیت باندې دلالت کوی لکه ﴿وصیت لك﴾ وغیره په دې ټولو الفاظ باندې تدبیرواقع کیږی .

﴿فإنه إثبات عتق عن دبر﴾ د تدبیرمفهوم دا دې.چه ددې الفاظونه روسته فی الحال غلام د مولی په ملکیت کې وی .اګرچه ده آزادی ورکړې ده.خوهغه آزادی ئې دمرګ نه روسته وخت پورې مقید کړې ده.نوآزادی به ورته ملاویږی .خودمرګه پس.نوپه دې صورتونوکې د مولی نیت ته اړتیا نشته.

**په تدبیرباندې مرتب احکام**

| |
|---|
| ثُمَّ لَا يَجُوزُ بَيْعُهُ بیا جائزنه دی خرڅول دده [غلام] وَلَا هِبَتُهُ اونه هبه کول دده وَلَا إِخْرَاجُهُ عَنْ مِلْكِهِ اونه ویستل دده [غلام] د ملکیت خپل نه إِلَّا إِلَى الْحُرِّيَّةِ مګر صرف آزادئ ته [یعنی دتدبیر نه روسته یاته واړه تصرفات ختم شو.صرف یوتصرف پاته دې چې ددې غلام آزادی ده] كَمَا فِي الْكِتَابَةِ لکه څنګه چې په بدل کتابت کې وی [چه کله مولی د غلام سره کتابت اوکړی .نودکتابت نه روسته دبدل کتابت په بدله کې دغلام د |

آزادولونه سوا بل تصرف نشي کولې] وَقَالَ الشَّافِعِي رحمه الله يَجُوزُ اوفرمائی امام شافعی رح چې جائزدی [دا تصرفات] لِأَنَّهُ تَعْلِيقُ الْعِتْقِ بِالشَّرْطِ ځکه دا [تدبير] تعليق د آزادئ دې په شرط پورې [ چې مرګ دې] نو فَلَا يَمْتَنِعُ بِهِ الْبَيْعُ وَالْهِبَةُ نه به منع کيږي په دې باندې خرڅول اوهبه کول كَمَا فِي سَائِرِ التَّعْلِيقَاتِ لکه څنګه چې په ټولو تعليقات کې دی .[مثلاً که يوسړې خپل غلام ته اووائی .که تا فلانی کار اوکړلو.نوته به آزاد ئې.نوترڅوچه هغه دغه کار نه وی کړې.دې ئې خرڅولې شی .هبه کولې شی . ځکه چې په دې شرط نه دې موجود شوې] وَكَمَا فِي الْمُدَبَّرِ الْمُقَيَّدِ اولکه څنګه چې په مقيد تدبيرکې دی .[چه مولی خپل غلام ته اووائی .که تا دا کاراوکړلو،نوته به مدبر ئې.نوترڅو چې هغه دغه کارنه وی کړې.دې ئې خرڅولې هبه کولې شی .ځکه چې په دې شرط نه دې موجود شوې] اوبل دليل دا چې تدبير وصيت دې نه منع کونکې دې ددې [تصرفاتو] نه. وَلِأَنَّ التَّدْبِيرَ وَصِيَّةٌ وَهِيَ غَيْرُ مَانِعَةٍ مِنْ ذٰلِكَ.ځکه که يوکس وصيت اوکړی .مثلاً چې زما د مرګه روسته زما کور مثلاً د زيد وی .نوددې وصيت کولونه روسته دې په دغه کور کې هرقسمه تصرف کولې شی .اوتدبيرهم وصيت دې.نوددې نه روسته به هم مولی د خرڅولوهبه کاوه وغيره تصرفات کولې شی ].

**تشريح:-** دتدبيرنه روسته په مدبرغلام کې تصرفات کول لکه خرڅول هبه کول دجمهوروعالمانو رح په نيز باندې جائز نه دې .ځکه چې دمولی دمرګه روسته دې آزادېږی .اودده د آزادئ سبب ددې نه سوا بل نه وی .چه دې مولی په خپل ژوند کې مدبرکړې وو.ددې نه دا معلومه شوه.چه د آزادئ سبب هم په هغه وخت کې موجود شوې وو.کله چې ورته دتدبيرالفاظ وئيلی وو.البته ترمرګه پورې په دغه سبب باندې فائده نه مرتب کيدله.اوداځکه کۀ چرته مورِ فی الحال آزادی واقع نکړو.اووقوع د آزادئ دمرګ نه ورستو وخت ته منسوب کړو.نودمرګ نه روسته خوپه مولی کې د آزادولو اهليت نه پاتې کيږی .نوځنګه به دې د تدبيراهل شی .ددې امله مورِ به خامخا دا وايو.چه آزادی فی الحال واقع شوې ده.البته ظهورئې د مولی مرګه پورې روستوشوې دې. امام شافعی رح فرمائی .دغه ډول دامام احمد اواسحاق بن راهويه رح هم دا مذهب دې.چه دتدبيرنه روسته هم مولی په مدبرغلام کې هرقسم تصرف لکه خرڅول هبه کول وغيره کولې شی .ددوی دليل د حضرت جابر رض حديث دې.چه په انصاروکې يوکس خپل غلام مدبرجوړ کړلو. حالانکه ددغه غلام نه سوا دهغه په ملکيت کې بل څه نه وو.کله چې نبی ﷺ ته ددې خبر اورسيدلو .نوهغوی هلته تشريف يوړلو.اودا ئې اوفرمائيل.څوک به زما نه دا غلام واخلی .حضرت نعيم بن عبدالله رض ترې هغه غلام په سل روپئ باندې واخستلو.نبی ﷺ هغه واړه رقم دغه انصاری ته ورکړلو.اوورته ئې اوفرمائيل.ته په دې باندې خپل پور ادا کړه. ددې حديث ځواب دا دې.چه دغه انصاری صحابی رض مقروض وو.اودهغه په ملکيت کې د دغه غلام نه سوا بل څه شی نه وو.ځکه نبی ﷺ دهغه دغه غلام په نعيم رض باندې خرڅ کړلو.اوانصاری رض صحابی ته ئې اوفرمائيل.چه په دې خپل پور خلاص کړه.ځکه چې تدبيريوتبرع ده.اود پور خلاصول لازمی شی دې.نونبی ﷺ دهغه دغه تصرف کالعدم اوګرځولو. ② دوهم ځواب دا دې.چه د نبی ﷺ خرڅول دخدمت لپاره وو.يعنی دغه مدبرغلام ئې دخدمت لپاره په بل چا باندې خرڅ کړلو.نوګويا چې دا په حقيقت کې اجاره وه.خوپه حديث کې ترې تعبير په بيع سره شوې دې. ③ دريم ځواب دا دې.چه د دغه انصاری صحابی رض تدبيرمقيد وو.اوپه تدبيرمقيد کې د شرط د وجود نه وړاندې تصرف کول جائزدې.

**تشريح:-** دترجمې څخه مطلب ښکاره دې

وَلَنَا قَوْلُهُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اوزمونږ لپاره دليل د نبی ﷺ ارشاد دې الْمُدَبَّرُ لَا يُبَاعُ وَلَا يُوهَبُ مدبر به خرڅولې نشي



اونه به هبه کولای شی وَلَا يُورَثُ اونه به په ميراث کې اوړې شی . وَهُوَ حُرٌّ مِنَ الثُّلُثِ(١) اودې آزاد دې د دريمې برخې مال [ميراث نه]

**تشريح:-** دترجمې څخه مطلب ښکاره دې

وَلِأَنَّهُ سَبَبُ الْحُرِّيَّةِ اوبل دليل دا چې تدبير سبب د آزادئ دې لِأَنَّ الْحُرِّيَّةَ تَثْبُتُ بَعْدَ الْمَوْتِ ځکه چې آزادی واقع کيږی روسته د مرګه وَلَا سَبَبَ غَيْرُهُ او[د آزادئ دپاره] سبب نشته سوا ددې [تدبير] نه،[اوچه سبب موجود شی نومسبب به خامخا موجوديږی ثُمَّ جَعْلُهُ سَبَبًا فِي الْحَالِ بيا چې دا تدبير فی الحال سبب اوګرځولې شی أَوْلَىٰ دا غوره دی [په نسبت سره دې ته چې د مرګ نه روسته سبب اوګرځولې شی ] لِوُجُودِهِ فِي الْحَالِ ځکه چې تدبير موجود شوې دې فی الحال وَعَدَمِهِ بَعْدَ الْمَوْتِ اونه دې موجود شوې روسته دمرګ نه [نوهرکله چې دتدبير الفاظ د مرګ نه وړاندې فی الحال موجود شوی دی .نوپکارده چې هم فی الحال سبب د عتق اوګرځولې شی ]

**تسهيل:** دترجمې څخه مطلب ښکاره دې

وَلِأَنَّ مَا بَعْدَ الْمَوْتِ حَالُ بُطْلَانِ أَهْلِيَّةِ التَّصَرُّفِ [بل دليل دا چې دمرګ نه روستو د تصرف باطليدو حالت دې.[ځکه چې سړې مړ شی .نودې د تصرف اهل پاتې نشو] فَلَا يُمْكِنُ تَأْخِيرُ السَّبَبِيَّةِ إِلَىٰ زَمَانِ بُطْلَانِ الْأَهْلِيَّةِ نوممکن نه دی روستو کول د سببيت د آزادئ [چه تدبيردې] هغه زمانې ته چې اهليت د تصرف په کې باطليږی

**تسهيل:** دترجمې څخه مطلب ښکاره دې

بِخِلَافِ سَائِرِ التَّعْلِيقَاتِ اوپه نوروتعليقاتود امام شافعی رح دقياس نه ځواب دا دې.] په خلاف د نورو ټولوتعليقاتو لِأَنَّ الْمَانِعَ مِنَ السَّبَبِيَّةِ قَائِمٌ قَبْلَ الشَّرْطِ ځکه چې د سبب ګرځيدو مانع موجود دې. لِأَنَّهُ يَمِينٌ ځکه چې تعليق قسم دې وَالْيَمِينُ مَانِعٌ اوقسم منع کونکې دې د کولودهغه څيزنه دکوم نه چې ئې قسم کړې وی وَالْمَنْعُ هُوَ الْمَقْصُودُ اوپه قسم کې خو منع کيدل مقصود وی [چه سړې د يوڅيز دکولونه قسم اوخوری .نوددهٔ مقصد په کې دا وی .چه دا اونکړی .نود تدبير مسئله په نورو تعليقاتوباندې قياس کول صحيح نه دی .]

**تسهيل:** دترجمې څخه مطلب ښکاره دې

وَأَنَّهُ يُضَادُّ وُقُوعَ الطَّلَاقِ وَالْعَتَاقِ اودا تعليق منع کوی واقع کيدل د طلاق اوعتاق وَأَمْكَنَ تَأْخِيرُ السَّبَبِيَّةِ إِلَىٰ زَمَانِ الشَّرْطِ لِقِيَامِ الْأَهْلِيَّةِ عِنْدَهُ اوممکن دې روستو کول د سبب [په مسئله د طلاق اوعتاق کې ] زمانې د موجوديدو د شرطه پورې د امله د قيام د اهليت د طلاق اوعتاق په وخت د وجود د شرط کې [يعنی چې په کوم وخت کې د طلاق يا عتاق شرط موجوديږی . نو چونکه تعليق کونکی ژوندې وی .اوپه هغې کې د طلاق اوعتاق اهليت موجود وی ] فَافْتَرَقَا نو دواړو مسئلې [يعنی مسئله د تدبيراود نوروتعليقاتو] جلا جلا شوې.[اوچه جلا شوې نو د تدبير مسئله په نورو تعليقاتو باندې قياس کول صحيح نشو.] او[ دتدبيراونورو تعليقاتوپه مينځ کې لِأَنَّهُ وَصِيَّةٌ د توپير بل دليل دا دې.چه]دا تدبير وصيت دې

**تشريح:-** دترجمې څخه مطلب ښکاره دې

وَالْوَصِيَّةُ خِلَافَةٌ فِي الْحَالِ او وصيت خليفه جوړول دی فی الحال [موصی له لره مثلاً زيد د بکر لپاره وصيت

(١) من حديث ابن عمر أخرجه ...

اوکړلو.نوزید دخپل مال په بعضې برخه کې بکر خپل خلیفه جوړ کړلو] پشان د وراثت كَالْوِرَاثَةِ وَإِبْطَالُ السَّبَبِ لَايَجُوزُ وَفِي الْبَيْعِ وَمَا يُضَاهِيهِ ذَلِكَ [لکه څنګه چې په میراث کې وارثان د مړی د مال خلیفګان وی .دغه دول په وصیت کې موصی له د مولی خلیفه دې] [هرکله چې دا معلومه شوه.چه د آزادئ سبب تدبیر دې]اوباطلول دسبب جائز نه دې. اوپه خرڅولو اوهغه چې مشابه وی د خرڅولو سره [لکه صدقه هبه وغیره شول] په دې کې باطلول د سبب دی

**تسهیل**:دترجمې څخه مطلب ښکاره دې

**حل اللغة**:① ابطال:باطل کول ② یضاهي: مشابه وی ③ یضاد:مخالف کیږی ]

### په مدبرکې کوم قسم تصرفات جائز دی؟

قَالَ فرمائی وَلِلْمَوْلَى أَنْ يَسْتَخْدِمَهُ اوجائزدی دمولی لپاره چې خدمت واخلی د مدبر نه وَيُؤَاجِرَهُ وپه اجرت ئې ورکړې [جاته] وَإِنْ كَانَتْ أَمَةً وَطِئَهَا اوکه وینځه وی نووطی کولې ئې شی وَلَهُ أَنْ يُزَوِّجَهَا اوجائز دی چې په نکاح سره ورکړی دا جاته لِأَنَّ الْمِلْكَ فِيهِ ثَابِتٌ لَهُ ځکه چې ملك په دې مدبرکې ثابت دې د مولی لپاره وَبِهِ تُسْتَفَادُ وِلَايَةُ هَذِهِ التَّصَرُّفَاتِ اوهم په دې ملکیت سره حاصلیږی اهلیت ددې تصرفاتو.[چه مالك وی .نوبل ته ئې په نکاح ورکولې شی .خدمت ترې اخستې شی وغیره هرهغه کارېږي کولې شی .چه دهغې نه روسته ملکیت پاته پاتې کیږی ]

**تشریح**:- دژباړې اواضافی قیوداتوڅخه مطلب واضح دې.

### تدبیربه په دریمه برخه مال کې وی.

فَإِذَا مَاتَ الْمَوْلَى عَتَقَ الْمُدَبَّرُ مِنْ ثُلُثِ مَالِهِ [کله چې مړشی مولی آزادیږی مدبرپه دریمه برخه د مال د مړی کې د امله دهغه حدیث نه کوم چې موږ روایت کړې دې.[لما روینا هغه حدیث ته اشاره ده.کوم چې وړاندې تیرشوې دې چې مدبرد دریمې برخې مال نه آزادیږی ] وَلِأَنَّ التَّدْبِيرَ وَصِيَّةٌ اوبل دلیل دا چې تدبیروصیت دې لِأَنَّهُ تَبَرُّعٌ [اووصیت ځکه دې] چې تدبیر یو احسان دې مُضَافٌ إِلَى وَقْتِ الْمَوْتِ چې مولی ئې په غلام باندې کوی .په مولی باندې دغلام تدبیرلازم نه دې] اضافت ئې شوې دې هغه وخت ته چې د مرګه روسته دې. وَالْحُكْمُ غَيْرُ ثَابِتٍ فِي الْحَالِ [ واقع نه دې فی الحال [یعنی په هغه مجلس کې چې د تدبیرالفاظ ئې ورته ونیلی وی. هرکله چې دا معلومه شوه.چه تدبیروصیت دې.] فَيَنْفُذُ مِنَ الثُّلُثِ نوجاری کیږی به د دریمې برخې [مال د مړی ] نه حَتَّى لَوْ لَمْ يَكُنْ لَهُ مَالٌ غَيْرُهُ يَسْعَى فِي ثُلُثَيْهِ وَإِنْ كَانَ عَلَى الْمَوْلَى دَيْنٌ لکه څنګه چې وصیت هم په دریمه برخه کې پوره کولې شی .ددې نه په زیاته کې نشی پوره کولې] تردې که چرته نه وی د مولی لپاره مال سوا د دغه غلام نه [کوم چې ئې مدبرکړې وی ] يَسْعَى فِي كُلِّ قِيمَتِهِ مزدوری به کوی په واړه قیمت د هغه کې لِتَقَدُّمِ الدَّيْنِ عَلَى الْوَصِيَّةِ د امله د وړاندیوالی د پور نه په وصیت باندې وَلَا يُمْكِنُ نَقْضُ الْعِتْقِ فَيَجِبُ رَدُّ قِيمَتِهِ ممکن نه دی ماتوی د آزادئ [ځکه چې مولی یوځل په خپلوالفاظو سره دا غلام د تدبیرپه ذریعه آزاد کړې دې.او آزادی چې یوځل حاصله شی .بیا غلامی نه راځی ] نوواجب شو [په غلام باندې] ورکول د قیمت خپل [وارثانو ته وَوَلَدُ الْمُدَبَّرَةِ مُدَبَّرٌ ] اودمدبره وینځې بچې به مدبر وی .[نوکوم احکام چې د مدبرغلام وی .هم هغه احکام به د مدبره ښځې د بچی هم وی ] وَعَلَى ذَلِكَ نُقِلَ إِجْمَاعُ الصَّحَابَةِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ [1] اوپه دې باندې [چه د مدبره ښځې اولاد هم مدبر وی ] منعقد شوې ده اجماع د صحابوؓ

1) كذا فی منصف عبدالرزاق ٩/١٤٤) رقم ١٦٦٨٣)_



ژباړه [نو کوښښ به کوی په ازادولو د دوو برخو خپلو کې [ځکه چې دمړی واړه مال صرف دا غلام دې.نودا غلام به په درې برخو تقسیمولې شی .په یوه برخه کې به دې د تدبیرپه وجه آزاد شی .اوپاته دوې [دوه] برخې چونکه د وارثانو دی .نوګټه به کوی .اوهغوی ته به دوې [دوه] برخې ورکوی .چه پوره آزاد شی ] اوکه چرته وی په مولی باندې پور [نوپه دې صورت کې به مدبرغلام د دریمې برخې نه نه آزادیږی .بلکه] کوښښ به کوی په واړه قیمت خپل کې ځکه چې وړاندې دې [پوره کول] د پور د وصیت په جاری کاوه باندې [یعنی که یوکس وصیت کړې وی .اوپه ده باندې پور هم وی .نودده دمرګه روسته به دټولونه اول پور خلاصولې شی .دهغې نه روسته که څه پاتې شی .هغه به په درې برخو تقسیمولې شی .یوه برخه به د وصیت اوتدبیرپوره کولوته ویستلې شی .اوکه څوك دا اووائی .چه هرکله د مولی ددې غلام نه سوا نورمال نشته.نود غلام آزادی دې باطله کړې شی .نو]

**تشریح**:- دژباړې اواضافی قیوداتوڅخه مطلب ښکاره دې.

### په مرګ پورې تدبیرمعلق کول

وَإِنْ عَلَّقَ التَّدْبِيرَ بِمَوْتِهِ عَلَى صِفَةٍ که مولی معلق کړلو تدبیرپه خپل مرګ پورې [چه مرګ موصوف کړی په څه خاص] صفت باندې. مثلاً مِثْلَ أَنْ يَقُولَ إِنْ مِتُّ مِنْ مَرَضِي هَذَا چې ووایې که زه مړشوم په مرض خپل کې چې دا دې أَوْ سَفَرِي هَذَا اوپه سفر خپل کې چې دا دې أَوْ مِنْ مَرَضِ كَذَا یا دمرض د امله چې فلانې مرض دې فَلَيْسَ بِمُدَبَّرٍ نونه دې مدبر[اوچه مدبرنشو] وَيَجُوزُ بَيْعُهُ نوجائز دی خرڅول ددې غلام لِأَنَّ السَّبَبَ لَمْ يَنْعَقِدْ فِي الْحَالِ ځکه چې سبب [د آزادئ] نه دې منعقد شوې فی الحال لِتَرَدُّدٍ فِي تِلْكَ الصِّفَةِ د امله د شك نه په دغه صفت کښې [چه هغه به واقع شی که نه؟] بِخِلَافِ الْمُدَبَّرِ الْمُطْلَقِ په خلاف د مدبرمطلق[چه په هغې ئې دتدبیر تعلیق په څه پورې نه وی کړې.بلکه مطلقاً ئې ونیلې وی .چه ته مدبر ئې.اوپه مطلق تدبیرکې مدبرګرځی .] لِأَنَّهُ تَعَلَّقَ عِتْقُهُ بِمُطْلَقِ الْمَوْتِ ځکه چې مولی معلق کړله آزادی دغلام په مطلق مرګ پورې [مرګ ئې په مرض یا سفر پورې مقید نه کړلو] وَهُوَ كَائِنٌ لَا مَحَالَةَ اومطلق مرګ واقع کیدونکې دې خامخا [ددې امله په مطلق تدبیرکې مدبرګرځی ] فَإِنْ مَاتَ الْمَوْلَى عَلَى الصِّفَةِ الَّتِي ذَكَرَهَا نوکه مړ شو مولی په صفت هغه چې ذکرکړې ئې وی عَتَقَ .نوآزادیږی كَمَا يَعْتِقُ الْمُدَبَّرُ لکه څنګه چې آزادیږی [مطلق] مدبر مَعْنَاهُ مِنَ الثُّلُثِ ددې مطلب دا دې.چه ددریمې برخې [مال د مړی نه] آزادیږی لِأَنَّهُ ثَبَتَ حُكْمُ التَّدْبِيرِ فِي آخِرِ جُزْءٍ مِنْ أَجْزَاءِ حَيَاتِهِ لِتَحَقُّقِ تِلْكَ الصِّفَةِ فِيهِ ځکه چې ثابت شوحکم د تدبیر[چه آزادی ده] په آخری برخه کې د برخو د ژوند دمولی نه د امله د موجودوالی د دغه صفت نه په ژوند[کې د مولی .اودژوند په آخری لمحاتوکې چې کوم تصرف اوکړې شی .هغه به د مړی د دریمه برخه مال نه پوره کولې شی .] فَلِهَذَا يُعْتَبَرُ مِنَ الثُّلُثِ نوددې امله معتبر به وی [دا تدبیر] د دریمې برخې نه وَمِنَ الْمُقَيَّدِ أَنْ يَقُولَ إِنْ مِتُّ إِلَى سَنَةٍ اود مقید [تدبیر] نه دا دی .چه ووایې که زه مړ شوم تریوکاله پورې أَوْ عَشْرِ سِنِينَ اویا لسو کالو پورې [نوته آزاد ئې.نوپه دې صورت کې آزادیږی لِمَا ذَكَرْنَا د امله دهغه دلیل نه کوم چې موږ ذکر کړلو[چه د صفت په واقع کیدوکې شك دې] بِخِلَافِ مَا إِذَا قَالَ په خلاف دهغه صورت چې ووایې إِلَى مِائَةِ سَنَةٍ وَمِثْلُهُ که زه مړ شوم ] ترسلو کالو پورې [یعنی په دې مهال کې مړ شوم نوته آزاد ئې] لَا يَعِيشُ إِلَيْهِ فِي الْغَالِبِ لِأَنَّهُ كَالْكَائِنِ لَا مَحَالَةَ [ځکه د دومره پورې نشی باتې کیدای غالباً نودا مرګ به واقع کیږی خامخا [ددې امله مدبرګرځی ]

**تشریح**:- د ترجمې څخه مطلب ښکاره دې

# باب الاستیلاد

ژباړه:- دا باب د ام ولد جوړولو په بیان کښې دې.

## داستیلاد لغوي او شرعي معنی اواحکام

وَإِذَاوَلَدَتْ الْأَمَةُ مِنْ مَوْلَاهَا کله چې بچی راوړي وینځه دخپل مولی نه [چه هغه وطی کړې وی اوهم د مولی د منی نه دا حملداره شی فَقَدْ صَارَتْ أُمَّ وَلَدٍ لَهُ نویقیناً اوګرځیدله دا وینځه ام ولد دده [یعنی د مولی د بچی مور شوه.اوهرکله چې ام ولد شوه] لَا يَجُوزُ بَيْعُهَا نوجائزنه دی خرڅول ددې وَلَا تَمْلِيكُهَا اونه بل څوك مالك جوړول ددې [چه بل چا باندې ئې وپلوري یا ئې هبه کړی ] لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ د املِه د ارشاد د نبی ﷺ نه أَعْتَقَهَا وَلَدُهَا [١] چې آزاده کړه دا وینځه ددې بچی [چه د مولی دمنی نه پیدا شو] أَخْبَرَ عَنْ إِعْتَاقِهَا ځکه چې نبی ﷺ خبرورکړلو ددې د آزادولو فَيَثْبُتُ بَعْضُ مَوَاجِبِهِ وَهُوَ حُرْمَةُ الْبَيْعِ نوثابت به شی بعضې احکام د آزادئ اوهغه حرمت د خرڅولو دې وَلِأَنَّ الْجُزْئِيَّةَ قَدْ حَصَلَتْ اوبله دا چې جزئیت پیدا شو بَيْنَ الْوَاطِئِ وَالْمَوْطُوءَةِ بِوَاسِطَةِ الْوَلَدِ په مینځ د واطی اوموطوء کې په ذریعه د بچی [یعنی مولی د وینځې د بدن یوه برخه شوه].ځکه چې دده منی نه بچې پیدا شو.اوهغه بچې د وینځې په رحم کې دې.اورحم د وینځې د بدن یوه برخه ده.نوهرکله چې د وینځې د بدن برخه چې د ولد په ذریعه دمولی د بدن برخه شوه.نوبیع ځکه حرامه شوه.چه لکه څنګه د حرد واړه بدن خرڅول حرام دی .دغه ډول دده دبدن د جزء خرڅول هم حرام دی .] فَإِنَّ الْمَاءَيْنِ قَدْ اخْتَلَطَا ځکه چې دوې [دوه] اوبه [یعنی منی د سړی اومنی د ښځې] بیشکه یوځائې شوې بِحَيْثُ لَا يُمْكِنُ التَّمْيِيزُ بَيْنَهُمَا په داسې طریقه چې نه دې ممکن توپیر په مینځ ددې دواړو کې عَلَى مَا عُرِفَ فِي حُرْمَةِ الْمُصَاهَرَةِ لکه څنګه چې پیژندلې شوې ده دا مسئله په بیان د حرمت دسخرګنئ کې إِلَّا أَنَّ بَعْدَ الِانْفِصَالِ تَبْقَى الْجُزْئِيَّةُ حُكْمًا البته د زیږیدو نه روسته جزئیت حکماً پاته پاتې کیږی لَا حَقِيقَةً حقیتاً نه پاتې کیږی فَضَعُفَ السَّبَبُ فَأَوْجَبَ حُكْمًا مُؤَجَّلًا إِلَى مَا بَعْدَ الْمَوْتِ نوکمزورې شو سبب د آزادئ اوداسې حکم ئې پیدا کړلو.چه هغه د مرګ نه روسته ښکاره کیږی .

حل اللغة:① تملیک: مالك جوړول ② اعتاق: آزادول ③ المصاهرة: سخرګنئ ]

تشریح:- ﴿على ما عرف فى حرمة المصاهرة﴾ ددې نه هغه مسئله مراد ده.کومه چې په کتاب النکاح کې تیره شوې ده.اوهغه دا چې د مسئلې په دلیل کې وئیلی شوی وو.چه وطی د بچی په واسطه باندې سبب د جزئیت دې.هم دا وجه ده.چه دواړو یعنی موراوپلارکې هریوته په پوره نسبت سره دده نسبت کولې شی .او د اړتیا نه بغیر په جزء باندې استمتاع اخستل حرام دی .

﴿ولأن الجزئية قدحصلت﴾ هرکله چې دمولی اووینځې دواړو منی یوځائې شی .نوددې په مینځ کې داسې ګډون راشی .چه په هغې کې بیلتون ممکن نه وی .اوددې دواړو اوبونه چې کوم بچې پیدا شی .نوچونکه هغه د دواړو د منی نه پیدا شوې وی .نودغه بچې چې ترڅو پورې دمور په نس کې وی .نود مولی اووینځې په مینځ کې حقیقی جزئیت قائم وی .ځکه چې د مولی د نطفې نه جوړ شوې بچې د مورپه رحم کې وی .اودهغې دبدن نه په حقیقت کې یوجزء ګرځیدلې وی .هم دا وجه ده.که جنین ته تکلیف وی .نوموړته هم تکلیف وی .اوچه کله پیدا شی .نوحقیقی جزئیت ختم شی .اوحکمی جزئیت قائم شی .اودا خبره یقینی ده.چه حکمی جزئیت د حقیقی په مقابله کې کمزورې وی .ددې کمزورئ په وجه به وینځه د مولی په ملکیت کې وی .اوددې آزادی به د مولی دمرګه پورې روستو کیږی . اود هغه د مرګ نه روسته آزادیږی .

وَبَقَاءُ الْجُزْئِيَّةِ حُكْمًا اوحکماً چې جزئیت پاته پاتې کیږی بِاعْتِبَارِ النَّسَبِ نو دا د نسب په اعتبار سره پاته پاتې

[١]من حدیث ابن عباس((أخرجه ابن ماجه باب ٢ رقم ٢٥١٦) والمستدرک ١٩/٢)_



کیږی وَهُوَ مِنْ جَانِبِ الرِّجَالِ اونسب چې ثابتیږی نود سړی د اړخه ثابتیږی دښځو داړخه نه ثابتیږی ] . فَكَذَا الْحُرِّيَّةُ تَثْبُتُ فِي حَقِّهِمْ لَا فِي حَقِّهِنَّ نودغه ډول به آزادی هم د سړو په حق کې ثابتیږی دښځو په حق کې به نه ثابتیږی حَتَّى إِذَا مَلَكَتْ الْحُرَّةُ زَوْجَهَا هم دا وجه ده که آزاده ښځه دخپل غلام خاوند مالکه شی وَقَدْ وَلَدَتْ مِنْهُ اوددې غلام خاوند نه ئې اولاد پیدا شی لَمْ يُعْتَقْ الزَّوْجُ الَّذِي مَلَكَتْهُ نود کوم خاوند چې دا ښځه مالکه ده.ددې په مرګ باندې هغه نه ازادیږی . بِمَوْتِهَا وَثُبُوتِ عِتْقٍ مُؤَجَّلٍ اوچه عتق موجل ثابت شی يَثْبُتُ حَقُّ الْحُرِّيَّةِ فِي الْحَالِ نوفی الحال د آزادئ حق ثابتیږی فَيَمْتَنِعُ جَوَازُ الْبَيْعِ وَإِخْرَاجُهَا لَا إِلَى الْحُرِّيَّةِ فِي الْحَالِ وَيُوجِبُ عِتْقَهَا بَعْدَ مَوْتِهِ خودددې ام ولد خرڅول اودخپل ملکیت نه ویستل به په تولوصورتونوکې ممنوع وی .اود مولی دمرګ نه روسته دا ام ولده آزادیږی وَكَذَا إِذَا كَانَ بَعْضُهَا مَمْلُوكًا لَهُ اوهم دا حکم په هغه وخت کې هم دې.چه د ام ولد بعضې برخه د مولی مملوکه وی .[نوهم به ام ولدیت ثابتیږی ] لِأَنَّ الِاسْتِيلَادَ لَا يَتَجَزَّأُ فَإِنَّهُ فَرْعُ النَّسَبِ فَيُعْتَبَرُ بِأَصْلِهِ ځکه چې ام ولده جوړول جزئیت نه قبلوی .[چه نیمه دې ام ولده شی .اونیمه وینځه پاتې شی ] ځکه چې اصل خو نسب دې.اوام ولدکیدل ددې فرع ده نوداصل اعتباربه کولې شی )

حل اللغة:① الجزئية: جزء جوړیدل،حصه جوړیدل ② اخراج: راویستل ③ استیلاد: ام ولده جوړول]

تشریح:- ﴿وبقاء الجزئية باعتبار النسب﴾ دبچې دولادت نه روسته دغه بچې دمور جزء دې.خوحقیقی جزء پاتې نشو.ځکه چې دهغې درحم نه رابهرشو.البته حکمی جزئیت پاتې شو.یعنی ددې ماشوم نسب د مولی نه ثابتیږی .اونسب د سړو داړخه وی .دښځود اړخه نه وی .هم دا وجه ده.که دیوماشوم پلار هاشمی وی اوموړئې غیرهاشمی وی .هغه ته سیدوئیلې شی .اوکه ددې په عکس وی .نوده ته سیدنشی وئیلې.نو معلومه شوه.چه نسب پلار ته ځی مورته نه ځی .نودغه ډول آزادی هم دسړو په حق کې ثابتیږی .یعنی دغه ماشوم چې پیدا شی .نودمولی خوئې شو.اوچه دمولی خوئې شو.نوآزاد شو.ځکه چې د آزاد سړی خوئې آزاد وی .

﴿حتی إذا ملکت الحرة زوجها﴾ اوددې دلیل چې نسب دپلارنه ثابتیږی د مورنه نه ثابتیږی .دا دې.که خاوندغلام وی .اوښځه آزاده وی .اود دغې آزادې ښځې دغلام نه بچې پیدا شو.نوددې دغه غلام خاوند ددې په مرګ باندې نه آزادیږی .ځکه چې یوه ښځه په هغه وخت کې ام ولدګرځی .چه دا دکوم کس نه حملداره شوې وی .هغه آزاد سړې وې.اودکوم صورت بیان چې موږ کوو.نوپه دې کې چې دچا د منی نه ولد پیدا شوې دې.هغه غلام دې.

﴿وثبوت حق مؤجل﴾ یعنی د تیرشوی بحث نه دا خبره ثابتیږی .چه دې لپاره عتق مؤجل ثابتیږی .اود دې عتق مؤجل نه دا ثابتیږی .چه دې لپاره فی الحال حق العتق ثابتیږی .نوددې خرڅول اودخپل ملکیت نه ویستل منع شو.ځکه چې دې لپاره عتق مؤجل ثابت دې.البته دلته یو سوال کیدای شی .هغه دا چې یوکس خپل غلام ته اووائی .﴿إذا جآء رأس الشهر فأنت حر﴾ نودا عتق مؤجل دې.اوپه دې صورت کې د مولی لپاره ددغه غلام خرڅول جائز دی .ددې عتق مؤجل د املِه دې د عتق دتصرف نه نشی منع کولې.اوپه زیربحث مسئله کې تاسو وائې.چه ددې عتق مؤجل په وجه مولی دغه غلام خرڅولې نشی .نوددې نه ځواب دا دې.چه ددې دخرڅولو نه ممانعت د نص په وجه ثابت دې.چه ﴿لا یبعن ولایوهبن﴾ فتح القدیر.

قَالَ مصنف رح فرمائی وَلَهُ جائزدی د مولی لپاره وَطْؤُهَا د [استیلادنه پس] دام ولد سره وطی کول وَاسْتِخْدَامُهَا وددې نه خدمت اخستل وَإِجَارَتُهَا اودغه ډول دغه چاته په اجاره ورکول وَتَزْوِيجُهَا وچا سره ئې نکاح کول [دا واړه تصرفات]. [لِأَنَّ الْمِلْكَ فِيهَا قَائِمٌ ځکه چې ددې تصرفاتو لپاره ملکیت شرط دې] اودمولی ملك په ام ولدکې قائم دې فَأَشْبَهَتْ الْمُدَبَّرَةَ نودمدبره وینځې سره مشابه شو.[نولکه څنګه چې په مدبره وینځه کې دا تصرفات جائزدی دغه ډول په ام ولدکې هم جائزدی ]

تشریح:- مطلب دڅپاره اواضافي قیوداتونه واضح دي.

**وَلَا يَثْبُتُ نَسَبُ وَلَدِهَا** اود ام ولدنه چې کوم ماشوم پیدا شی .دمولی نه دهغه نسب نه ثابتیږی **إِلَّا أَنْ يَعْتَرِفَ بِهِ** البته دا چې مولی ددې اقرار اوکړی .[چه دا زما بچې دې] **وَقَالَ الشَّافِعِيُّ** رحمه الله اوامام شافعی رح فرمائی **وَإِنْ لَمْ يَدَّعِ** اګرچه مولی د نسب دعوی نه کوی **لِأَنَّهُ لَمَّا يَثْبُتُ نَسَبُهُ مِنْهُ** چې دمولی نه د دې ولدنسب ثابتیږی **ثَبَتَ النَّسَبُ بِالْعَقْدِ**....ځکه چې هرکله په عقدنکاح سره نسب ثابتیږی .[ځکه چې د منکوحه سره جماع کول حلال دی ] **فَلَأَنْ يَثْبُتَ بِالْوَطْءِ** نود وینځې سره په جماع کولوسره به خامخا نسب ثابتیږی .[ځکه چې دې سره هم وطی کول حلال دی ]**وَأَنَّهُ أَكْثَرُ إِفْضَاءً أَوْلَى** بلکه مولی د وینځې سره وطی زیاته کوی **وَلَنَا** اوزمونږ[احنافو] دلیل دا دې **أَنَّ وَطْءَ الْأَمَةِ يُقْصَدُ بِهِ قَضَاءُ الشَّهْوَةِ** چې د وینځې په وطی کولوکي دشهوت پوره کول مقصود وی **دُونَ الْوَلَدِ** اولاد مقصود نه وی .[چه ددې وینځې نه راته الله تعالی اولاد راکړی ] **لِوُجُودِ الْمَانِعِ عَنْهُ** ځکه چې مانع موجود دې.[که ددې وینځې نه ئې اولاد پیدا شی .نودا به ام ولداوګرځی .اومال متقوم به پاتې نشی .نوځکه د وینځې سره وطی د اولاد په غرض نه کوی .بلکه شهوت پوره کوی ]**فَلَابُدَّ مِنَ الدَّعْوَةِ بِمَنْزِلَةِ مَالِكِ الْيَمِينِ مِنْ غَيْرِ وَطْءٍ** نود مولی د اړخه د نسب دعوی کول ضروری دی .] پشان د ملك یمین بغیر د وطی نه [یعنی چې کله د چا په ملك کي وینځه وی .اودهغې بچې پیدا شی .خوده ورسره وطی نه وی کړې.نوپه دې صورت کې ددغه بچی نسب ددې مولی نه نه ثابتیږی .ترڅوچه ئې دې دعوی اونکړی .نودغه ډول په زیربحث مسئله کي هم.اوکه ته دا وائې.چه په عقدنکاح کي بغیرد دعوی نه نسب ثابتیږی .نو] **بِخِلَافِ الْعَقْدِ** په خلاف د نکاح **لِأَنَّ الْوَلَدَ يَتَعَيَّنُ مَقْصُودًا مِنْهُ** ځکه چې په عقد نکاح کي د خاوندداړخه دالاد طلب یومقصودی څیزدي.[چه بچې پیدا شی ] **فَلَا حَاجَةَ إِلَى الدَّعْوَةِ** نود نسب دعوی کولوته حاجت نشته.[بلکه پخپله نسب ثابت شو]

تشریح:- «ولایثبت نسب ولدها» کله چې د مولی د وینځې بچې پیدا شی .نودده نسب داحنافو رح په نیزد مولی نه هله ثابتیږی .چه مولی اقراراوکړی .چه آو دا زما بچې دې.ځکه چې دا هم ممکن نه ده.چه دا وینځه ددې مولی نه وړاندې دبل چا په ملکیت کې وی .اوهغه ورسره وطی کړې وی .اودا ولد د هغه د منئ نه پیدا شوې وی .ددې امله د نسب د ثبوت لپاره د مولی دعوی ضروری ده.

«لأنه لما ثبت النسب بالعقد» په مذکوره مسئله کي چې د وینځې نه کوم بچې پیدا شی .دامام شافعی په نیزددغه بچی نسب به د مولی نه ثابت وی .اګرکه مولی دده د نسب دعوی نه کوی .اودلیل ئې په عقد نکاح باندې قیاس دې.چه لکه څنګه په نکاح سره وطی کول حلالیږی .اود ولد نسب د خاوند د دعوې نه بغیرثابتیږی .دغه ډول په عقد یمین کي هم د وینځې سره وطی کول حلال دی .نود مولی د دعوې نه بغیربه ترې د بچی نسب ثابتیږی .خودامام شافعی رح دا قیاس د ډیروو جوهو د امله صحیح نه دې.ځکه چې په مقیس اومقیس علیه کي د زمکې اوآسمان توپیر دې.① حره سره دوطی لپاره نکاح ضروری ده.اود وینځې لپاره ملك یمین کافی دې.② دخوی دښځې سره وطی کول موجب د حد دی .اودخوی د وینځې سره وطی کول موجب دحد نه دی .③ د خاوند د وفات نه روسته آزاده ښځه بل سره نکاح کولې شی .اووینځه دمالك د وفات نه روسته وارثانوته پاتې کیږی .اوام ولددمولی د وفات نه روسته آزادیږی .④ آزاده ښځه دخاوندمیراث خوره جوړیږی .اوام ولد صرف آزادیږی .داسې عالمانو رح نورفرقونه هم ذکرکړی دی .نودامام شافعی رح قیاس صحیح نشو.

**فَإِنْ جَاءَتْ بَعْدَ ذَلِكَ بِوَلَدٍ** که ددې نه روسته [دویم] ماشوم پیدا شو **ثَبَتَ نَسَبُهُ بِغَيْرِ إِقْرَارٍ** نودمولی داقرار نه بغیرد دغه ماشوم نسب د مولی نه ثابتیږی **مَعْنَاهُ** صاحب دهدایه رح فرمائی .ددې مطلب دا دې **بَعْدَ اعْتِرَافٍ مِنْهُ بِالْوَلَدِ**



**الْأَوَّلِ** دوینځې نه چې کوم اولنې ماشوم پیدا شوی وی .که مولی د هغه د نسب اقرار کړې وی .[نوپه دوهم ماشوم کي د نسب دثبوت لپاره د مولی د دعوې اړتیا نشته] **لِأَنَّهُ بِدَعْوَى الْوَلَدِ الْأَوَّلِ** ځکه چې ده د اولنی ماشوم د نسب دعوی اوکړله **تَعَيَّنَ الْوَلَدُ مَقْصُودًا مِنْهَا** نومعلومه شوه چې ددې وینځې نه مقصود اولاد پیدا کول دی .[صرف شهوت پوره کول نه دی ] **فَصَارَتْ فِرَاشًا** نووینځه د مولی لپاره فراش اوګرځیده **كَالْمَعْقُودَةِ بعد النكاح** لکه دنکاح نه روسته چې فراش مقصود وی .

تشریح:- صاحب دهدایه رح فرمائی .که د وینځې ولد پیدا شو.اومولی دا اقرار اوکړلو.چه دا زما بچې دې.اوددې نه روسته هم د دغه وینځې نه دوهم ماشوم پیدا شو.نود دې دوهم ماشوم د نسب د ثبوت لپاره د مولی د دعوی اړتیا نشته.بلکه خود بخود به دا ماشوم مولی ته منسوب وی .ځکه چې عام طورخو په وینځې کي د شهوت پوره کول مقصود وی .د دوی نه د اولاد پیدا کول مقصود نه وی .خوچه دې مولی د اولنی بچی د نسب اقراراوکړلو.نومعلومه شوه.چه مولی دا وینځه خپل فراش جوړ کړې دې.لکه څنګه چې منکوحه د خاوند فراش وی .اود منکوحه د ولد ثبوت بغیرد دعوی نه کیږی .دغه ډول به په دې صورت کي د ام ولد د بچی دنسب ثبوت هم بغیرد دعوی نه کیږی .

## دام ولد د بچی د نسب نه دمولی انکارکول

**إِلَّا أَنَّهُ إِذَا نَفَاهُ** البته دا چې مولی د ام ولدد بچی د نسب نه انکاراوکړی **يَنْتَفِي بِقَوْلِهِ** نود مولی په انکارسره ترې دده نسب منتفی کیږی **لِأَنَّ فِرَاشَهَا ضَعِيفٌ** ځکه چې د ام ولد فراش کمزوری دې **حَتَّى يَمْلِكَ نَقْلَهُ بِالتَّزْوِيجِ** هم دا وجه ده.چه مولی دخپل خان نه ددې ملکیت منتقل کولای شی چې بل چا سره د ام ولد نکاح اوکړی **بِخِلَافِ الْمَنْكُوحَةِ حَيْثُ لَا يَنْتَفِي الْوَلَدُ بِنَفْيِهِ** .په خلاف دمنکوحه چې د خاوند په نفی کولوسره ترې ولدنه منتفی کیږی **إِلَّا بِاللِّعَانِ** البته دلعان په ذریعه منتفی کیږی .[په منکوحه کي د خاوندپه انکارسره ولد ځکه نه منتفی کیږی ] **لِتَأَكُّدِ الْفِرَاشِ** چې د منکوحه فراش قوی دی **حَتَّى لَا يَمْلِكُ إِبْطَالَهُ بِالتَّزْوِيجِ** هم دا وجه ده.[چه فراش ئې قوی دې] خاونددې د فراش باطلولومالك نه دې.چه بل چاته دا ښځه په نکاح کړی **وَهَذَا الَّذِي ذَكَرْنَاهُ حُكْمٌ** اودا موږ چې کوم حکم ذکرکړلو.دا د قضاء حکم دې.[که مولی دام ولدد بچی دنسب نه انکارکوی .نوقاضی به دده په حق کي فیصله کوی ] **فَأَمَّا الدِّيَانَةُ فَإِنْ كَانَ وَطِئَهَا** اودیانتاً [دالله اودبنده په مینځ کي چې کومه معامله ده] که مولی وینځه وطی کړې وی **وَحَصَّنَهَا** اوخپله منی ئې دهغې په رحم کي محفوظ کړې وی **وَلَمْ يَعْزِلْ عَنْهَا** اوعزل ئې نه وی کړې.[چه انزال ئې دفرج نه بهرکړی وی ] **يَلْزَمُهُ أَنْ يَعْتَرِفَ بِهِ** نوپه مولی باندې لازم دی .چه ددې بچی د ولدیت اقراراوکړی **وَيَدَّعِي** اود ده د نسب دعوی اوکړی **لِأَنَّ الظَّاهِرَ أَنَّ الْوَلَدَ مِنْهُ** ځکه چې ظاهری حالت دا وائی .چه دا بچې د مولی دې.[ځکه چې په دغه وخت کي ام ولدده په ملك یمین کي ده.نوهم ده به ورسره وطی کړې وی ] **وَإِنْ عَزَلَ عَنْهَا** اوکه مولی عزل کړې وی **أَوْلَمْ يُحَصِّنْهَا** اویا ئې ددې په رحم کي خپله منی نه وی محفوظ کړې **جَازَ لَهُ أَنْ يَنْفِيَهُ** نوپه دې صورت کي ده لره د وینځه دده په ملکیت کي ده.نوولد به ئې هم دده د منئ نه وی ] بل ظاهر مقابل دې.[هغه دا چې مولی ته پته ده.چه ما عزل کړې دې.اوخپله منی مې د وینځې رحم ته نه ده داخله کړې] **هَكَذَا رُوِيَ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ** هم دغه ډول دابوحنیفه رح نه نقل شوی دی . **وَفِيهِ رِوَايَتَانِ أُخْرَيَانِ عَنْ أَبِي يُوسُفَ وَعَنْ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُمَا اللَّهُ** البته په دې مسئله کي دابویوسف اومحمد رح نه دوې [دوه] روایتونه نورهم دی **ذَكَرْنَاهُمَا فِي كِفَايَةِ الْمُنْتَهَى** هغه موږ په کفایة المنتهی کتاب کي ذکرکړی دی .

حل اللغة: ① حصن: ساتنه ② ابطال: باطل کول ③ تزویج: واده کول]

تشريح:- «الا باللعان» يعنى د منكوحه فراش دومره قوى دې.كه خاونددې د ولد د نسب نه انكار كوى. نودده نسب تري نه منتفى كيږى .بلكه دغه ماشوم به هم دده ولد وى .په ده باندې نان نفقه اوتربيت واجب وى .اوكه دې مړ شو.نو ميراث خوربه ئې وى .البته په يوصورت كي ترې د منكوحه د ولد نه د خاوند انكارمعتبرګرځى .چه دې دښځې سره لعان اوكړى .دلعان طريقه اوتعريف په باب اللعان كي تيرشوې دې.هغې ته رجوع اوكړئ.حاصل دا كه خاونددلعان په ذريعه دخپل بچى نه انكاراوكړلو.نودده انكار معتبر دې.ورنه نه دې معتبر.يعنى كه خاوند د ولد دنسب نه انكاراوكړلو.نودې به لعان كوى .اوچه لعان اوكړى .نوولد دده نه منتفى شو.اوپه ده باندې حدقذف نشته.اوكه خاوندد لعان نه انكاراوكړو.نوولد ثابت النسب شو.اوپه خاوند باندې حد قذف واجب شو.

«لأن الظاهريقابله ظاهرآخر» دلته كي د اولنى ظاهرنه دې خبرې ته اشاره ده.چه هركله دام ولد بچې پيدا شى .نوظاهرهم دا وانى .چه دا بچې به دده وى .ځكه چې د وينځې سره د مولى لپاره وطى كول حلال وو.نوهم ده به ورسره وطى كړې وى .اودا ماشوم به هم دده وى .اودبل ظاهرنه دا مراد دې.چه چونكه مولى ته پته ده.چه ما يقينى دې سره وطى كړې ده.خوعزل مې كړې دې.اوددې رحم ته مې منى نه ده داخله كړې.نودا څنګه زما بچې كيداې شى .

«وفيه روايتان أخريان» چونكه كفاية المنتهى نوم كتاب ناياب دې.ددې امله پته نه لګى .چه كوم دوې [دوه] روايتونه به ئې په كي ذكركړې وى .

فَإِنْ زَوَّجَهَا اوكه مولى خپله ام ولد چاته په نكاح كړله فَجَاءَتْ بِوَلَدٍ اودې ولد اوزيږلو فَهُوَ فِي حُكْمِ أُمِّهِ نودغه ماشوم به دخپلې مورپه حكم كي وى .[چه څنګه ئې مور د مولى د مرګ نه روسته ازاديږى .دغه ډول به ددې بچې هم آزاد وى ] لِأَنَّ حَقَّ الْحُرِّيَّةِ يَسْرِي إِلَى الْوَلَدِ ځكه چې د آزادئ حق [دمورنه] ماشوم ته رسي .پشان د تدبير[ كَالتَّدْبِيرِ كه مورمدبره وى .نوددې بچې به هم مدبروى ] أَلَا تَرَى آيا ته نه ګورې أَنَّ وَلَدَ الْحُرَّةِ حُرٌّ چې د آزادې ښځې بچې آزاد وى وَوَلَدَ الْقِنَّةِ رَقِيقٌ اود وينځې بچې غلام وى وَالنَّسَبُ يَثْبُتُ مِنَ الزَّوْجِ اونسب د خاوندنه ثابتيږى .[مثلاً كه مورئې سيده وى .اوپلارئې غيرسيد وى .ده ته سيدنشى وئيلې.اوكه ددې په عكس وى .نوسيد ورته وانى ] لِأَنَّ الْفِرَاشَ لَهُ لِأَنَّ الْفِرَاشَ لَهُ ځكه چې فراش د خاوند وى .[دا نسب ثابتيږى ] وَإِنْ كَانَ النِّكَاحُ فَاسِدًا اګرچه نكاح فاسده وى .إِذِ الْفَاسِدُ مُلْحَقٌ بِالصَّحِيحِ فِي حَقِّ الْأَحْكَامِ ځكه چې فاسده نكاح د احكامو په حق كي د صحيح نكاح سره ملحقه كيږى .[نوكوم احكام چې د صحيح نكاح وى .هغه د فاسدې نكاح هم وى .لكه وطى ورسره جائزكيږى .ميراث ترې وړې شى وغيره] وَلَوِ ادَّعَاهُ الْمَوْلَى اوكه مولى دا دعوى اوكړى چې دا بچې زما دې لَا يَثْبُتُ نَسَبُهُ مِنْهُ نود بچې نسب دمولى نه نه ثابتيږى لِأَنَّهُ ثَابِتُ النَّسَبِ مِنْ غَيْرِهِ ځكه چې دا ماشوم دبل نه ثابت النسب دې.[يعنى چاته چې ئې دغه وينځه په نكاح كړې وى .هم دهغه نه دا نسب ثابت دې.ځكه چې دا منكوحه وينځه دهغه په فراش كي ده] وَيَعْتِقُ الْوَلَدُ اوبچې آزاديږى وَتَصِيرُ أُمُّهُ أُمَّ وَلَدٍ لَهُ لِإِقْرَارِهِ اوددې ماشوم د مولى د اقرارپه وجه د مولى لپاره ام ولدګرځى .[ځكه مولى په خپله دا اقراركوى .چه ماخپله دا وينځه فلانى ته په نكاح كړې ده]

تشريح:- مسئله اسانه ده.

## د مولى دمرګه روسته دام ولدآزادى

وَإِذَا مَاتَ الْمَوْلَى وكله چې مولى مړشى عَتَقَتْ مِنْ جَمِيعِ الْمَالِ نوام ولد دواړه مال نه آزاديږى لِحَدِيثِ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيِّبِ دسعيدبن المسيب رح دحديث د امله أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَ بِعِتْقِ أُمَّهَاتِ الْأَوْلَادِ چې نبى ﷺ د امهات الاولاد د آزادولوحكم كړې وو وَأَنْ لَا يُبَعْنَ فِي دَيْنٍ اوددې حكم ئې كړې وو.چه دوى دې په پور كي



نشى خرڅولې وَلَا يُجْعَلْنَ مِنَ الثُّلُثِ (١) اوپه دريمه برخه مال كي دې نشى شمارلې وَلِأَنَّ الْحَاجَةَ إِلَى الْوَلَدِ أَصْلِيَّةٌ اوبله دا چې د ولد حاجت اصلى دې فَتُقَدَّمُ عَلَى حَقِّ الْوَرَثَةِ وَالدَّيْنِ كَالتَّكْفِينِ نودا حاجت به د مړى دكفن كولوپه حق باندې مقدم كولاى شى بِخِلَافِ التَّدْبِيرِ په خلاف دتدبير لِأَنَّهُ وَصِيَّةٌ بِمَا هُوَ مِنْ زَوَائِدِ الْحَوَائِجِ ځكه چې تدبيردهغه څيزونو په اره كي وصيت دې مِنْ زَوَائِدِ الْحَوَائِجِ كوم چې زياتى حاجتونه دى وَلَا سِعَايَةَ عَلَيْهَا فِي دَيْنِ الْمَوْلَى لِلْغُرَمَاءِ اودمولى د پور په خلاصولوكي په دې باندې كوښښ نشته[چه دا به خوارى مزدورى كوى .اودخپل مولى پور به خلاصوى ] لِمَا رَوَيْنَا دهغه حديث د امله كوم چې موږ روايت كړلو وَلِأَنَّهَا لَيْسَتْ بِمَالٍ مُتَقَوِّمٍ اوبله دا چې ام ولد مال متقوم نه دې حَتَّى لَا تُضْمَنَ بِالْغَصْبِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ هم دا وجه ده.كه چا ام ولد غصب كړله.نوپه مولى باندې د ابوحنيفه رح په نيزتاوان نشته.[چه دا به خوارى مزدورى كوى .اودمولى پور به خلاصوى .نوچه مال متقوم نشو فَلَا يَتَعَلَّقُ بِهَا حَقُّ الْغُرَمَاءِ نوپه دې پورې به د قرضداروحق نه متعلق كيږى كَالْقِصَاصِ لكه دقصاص پشان بِخِلَافِ الْمُدَبَّرِ لِأَنَّهُ مَالٌ مُتَقَوِّمٌ په خلاف دمدبرځكه چې مدبرمال متقوم دې.

حل اللغة: ①سعاية:مزدورى ② التكفين: مړى ته كفن اچول ③ الغرماء: جمع د غريم، په معنى د قرضخواه ]

تشريح:- «ولايبعن فى دين» ددې جملې مطلب دا دې.كه مولى مړشو.اوپه هغه باندې پور وى .اودهغه پور دخلاصى لپاره دهغه نوره تركه خرڅوى .نوهغه دې وپلورى .خوام ولدبه نشى خرڅولې.چه دمولى پورپرې خلاص كړى .ځكه چې دا خو آزاده ده.اودآزادې خرڅول جائز نه دى .

«ولايجعلن من الثلث» مسئله دا ده.چه كله څوك مړشى .اووصيت ئې كړې وى .نودهغه وصيت به د هغه دمال په دريمه برخه كي نافذ كولاى شى خودام ولدمسئله داسې نه ده.چه كله مولى مړشى .نودا آزاده شوه.دې ته اړتيا نشته.چه دا دمړى په دريمه برخه مال كي حساب كړې شى .

«ولأن الحاجة إلى الولد» دام ولدبچى ته ضرورت، اړتيا اصليه دې.ځكه چې هم ددې بچى په وجه دا ام ولدګرځى .اودآزادئ سرتيفكيټ ورته ملاويږى .اودوارثانوحق حاجت اصليه نه دې.ددې امله به دواړه مال نه اول ام ولدآزاديږى .اوددې نه روسته به وارثانوته خپله برخه ميراث ملاويږى .

«والدين كالتكفين» يعنى لكه څنګه چې سړې مړ شى .نودټولونه اول به دده د ميراث نه دتجهيزاوتكفين خرچه ويستلې شى .نودغه ډول به ترې په ده چې كوم پور وى .هغه هم ادا كولې شى .ددې نه روسته چې كوم مال پاتې شى .هغه به په وارثانوتقسيمولې شى .

«بخلاف التدبير» دا د تدبيراو استيلاد په مينځ كي توپير كوى .هغه دا چې دام ولد لپاره بچې اړتيا اصليه دې.ددې امله به د وارثانودويش نه وړاندې په كل مال كښې ام ولدآزاديږى .البته كوم غلام چې مدبروى .نودهغه تدبيرد وصيت په حكم كي دې.اوپه وصيت كي به وصيت د ثلث نه پوره كولې شى . تردې كه دثلث نه مدبرنه آزاديږى .مثلاً دده قيمت زر روپئ دې.اوټوله تركه د ده يوويشت سوه روپئ دى . نوپه دې صورت كي ثلث اووه سوه روپئ جوړيږى .نووارثان به مدبرغلام د خپل ځان په آزادولوكي د درې سوو روپو په وركولوباندې مجبوره كوى .نوداستيلاد قياس په تدبيرباندې صحيح نه دې.

«ولأنها ليست بمال متقوم» ددې لپاره دليل چې دمولى دمرګه روسته به ام ولددواړه مال نه آزاديږى .دا دې.چه ام ولد مال متقوم نه دې.هم دا وجه ده.چه دامام ابوحنيفه رح په نيزكه ام ولد چا غصب كړله.نوپه هغه باندې ضمان نشته.نوهركله چې ام ولدمال متقوم نشو.نود پور خواهانوحق به وربورې متعلق نه وى .بلكه اول به دا دواړه مال نه آزاديږى .اوددې نه روسته به د پور غوښتونكو پور ادا كولې شى .

١) غربه الزيلعى (رح) ثم نقل أحاديث فى الباب منها حديث ابن عمر(( أن النبى ﷺ نهى عن بيع أمهات الأولاد وقال لايبعن ولا يوهبن ولايورثن يستمع بها سيدها ما دام حياً فإذا مات فهى حرة أخرجه الدارقطنى فى سننه ١٣٥/٤)).

﴿كالقصاص بخلاف المدبر لأنه مال متقوم﴾ يعنی ام ولد په قصاص باندي قياس کول پکاردی .څکه چي لکه څنګه قصاص مال متقوم نه دي.هم دا وجه ده.چه د مقتول اولياء قاتل د قصاص په روپوکي نشي ګرفتارولي.نودغه ډول استيلاد هم مال متقوم نه دي.اوپه مدبرباندي دام ولدقياس څکه صحيح نه دي.چه مدبرمال متقوم دي اوام ولدمال متقوم نه دي.نودا قياس مع الفارق شو.

## دنصراني د ام ولداسلام قبلولوحکم

وإذا أسلمت أم ولد النصراني کله چي د نصراني ام ولد اسلام قبول کړي فعليها أن تسعى في قيمتها نوپه دي ام ولد باندي سعايه لازم ده.[يعنی چي مزدوري کوی .اودومره پيسي برابرکړی .چه دخپل سرقيمت خپل نصراني مولی ته حواله کړی ] وهي بمنزلة المكاتب لا تعتق څکه چي دا ام ولد د مکاتبه پشان ده حتى تؤدي السعاية چي ترخوني خپل بدل کتابت نه وی ورکړي نو نه آزاديږی وقال زفر رحمه الله اوامام زفر رح فرمائی چي کله دا اسلام قبول کړی تعتق في الحال نوفی الحال آزاده شوه والسعاية دين عليها البته سعايه [دخپل قيمت ادا کول] په دي باندي پور شو وهذا الخلاف فيما إذا عرض على المولى الإسلام اودا اختلاف په هغه صورت کي دي چي [دام ولدد اسلام راوړلونه پس] مولی ته اسلام پيش کړي شی .[چه ايمان راوړه] فأبى اوهغه انکاراوکړی فإن أسلم اوکه هغه اسلام قبول کړلو تبقى على حالها نودا په خپل حالت باندي پاتي ده.[چه څنګه وړاندي ام ولد وه.هم هغه شان به ام ولد وی ] له د امام زفر رح دليل دا دي أن إزالة الذل عنها بعد ما أسلمت واجبة چي د ام ولد اسلام راوړلو نه روسته ددي نه د غلامۍ ذلت لري کول واجب دي وذلك بالبيع أو الإعتاق اود غلامۍ ذلت لري کول په دوو طريقو کيږی .يوه دا چي خرڅه کړي شی .بله دا چي آزاده کړي شي وقد تعذر البيع اوخرڅول خو ني غيرممکن دی .[څکه چي دام ولد خرڅول جائز نه دی ] فتعين الإعتاق نوآزادی متعينه شوه.[چه قاضي به ددي دآزدولوحکم اوکړی .اودي ته به حکم اوکړی .چه ته دخپل سرپه قيمت کي سعی کوه.اومولی ته خپل قيمت برابرکړه]

تشريح:- ﴿فإن أسلم تبقى على حالها﴾ که نصراني مولی اسلام قبول کړلو.نودا نه آزاديږی .بلکه هم ام ولد به وی .څکه چي داسلام راوړلوپه وجه هغه واړه رکاوټونه ختم شول.کوم چي د کفراواسلام په مينځ کي قائم دی

﴿تعتق في الحال والسعاية دين عليها﴾ په مذکوره مسئله کي دامام زفر رح مذهب دا دي.چه څنګه دا اسلام قبول کړی .نودا آزاده شوه.اوددي قيمت دنصراني مولی دارخه په دي باندي پور شو.نوقاضی به دي ام ولدته اووائی .چه ته ګټه کوه.اونصراني ته خپل قيمت پوره کړه.

﴿أن إزالة الذل عنها﴾ فی الحال ام ولد څکه آزاديږی .که دا آزاده نشي .نوددي ګټه به د مولی ګټه وی .او دا به دغلامۍ په زنځيرونوکي بنده وی .نو کيداي شی .چه د دي غلامی ددي د اسلام نه د ګرځيدوسبب اوګرځی .څکه ضروری ده.چه دي ته فی الحال آزادی ملاؤ شی .

ولنا اوزمونږ[دجمهوراحنافو رح] دليل دا دي أن النظر من الجانبين في جعلها مكاتبة چي د دواړو [نصراني اوام ولد] فائده په دي کي ده.چه دا ام ولدمکاتبه اوګرځولي شی لأنه يندفع الذل عنها بصيرورتها حرة يدا څکه چي دا دکتابت په ذريعه آزاده شی .نود غلامۍ ذلت به تري لري شی والضرر عن الذمي اود ذمی څخه به ضرر هم لري شی .لانبعاثها على الكسب نيلا لشرف الحرية څکه چي ام ولدته فی الحال آزادی حاصله نشي نوپه دي طريقه به دا د آزادۍ حاصلولو ته آماده کولای شی فيصل الذمي إلى بدل ملكه نوذمی ته به دخپل ملکيت معاوضه ملاؤ شي أما لو أعتقت اوکه ام ولدفی الحال آزاده کړي شی وهي مفلسة اودا غريبه وی تتوانى في الكسب وماليته أم الولد نودا به په ګټه کي ناراستی کوی .[اګرچه زمونږ په نيزام ولدمال متقوم نه دي.څکه چي آزاده ده خو] يعتقدها الذمي متقومة ذمی دام ولد دماليت اعتقاد ساتی فيترك وما يعتقده



نونصراني به په خپل اعتقادباندي پريښولي (پريخودي) شي .[اوده ته به دهغي قيمت ورکولي شي ] ولأنها إن لم تكن متقومة اوبله دا که ام ولد مال متقوم نه وی فهي محترمة نومحترمه به وی وهذا يكفي لوجوب الضمان اوهم دا احترام موجب دتاوان دي كما في القصاص المشترك إذا عفا أحد الأولياء لکه په قصاص مشترک کي چي کله دمقتول په اولياؤ کي يوکس قصاص معاف کړی يجب المال للباقين نود پاته اولياؤ لپاره مال واجبيږی .[هغوی دقصاص مطالبه نشي کولي] ولو مات مولاها اوکه د ام ولد مولی مړشو عتقت بلا سعاية نودا بغيرد سعاية نه نه آزاديږی لأنها أم ولد له څکه چي دا خودهغه ام ولد ده.[اوام ولد د مولی دمرګه روسته آزاديږی ] ولو عجزت في حياته اوکه ام ولد دمولی په ژوند کي د مزدورۍ کولونه عاجزه شي لا ترد قنة نودوباره وينځه نه ګرځی لأنها لو ردت قنة څکه که دا واپس وينځه شي أعيدت مكاتبة لقيام الموجب نومکاتبه به تري جوړه شی .څکه چي دکتابت سبب موجود دي.[چه استيلاددي]

حل اللغة:① متقومة: هغه څيزچه قيمت ني وی مفت نه وی ]

تشريح:- ﴿وأن النظر من الجانبين﴾ زمونږ دليل دا دي.که چرته داسلام راوړلونه روسته دنصراني ام ولد في الحال آزاده شی .اوبه دي باندي مولی ته خپل قيمت ورکول ضروری نشي .نوبه دي کي دنصراني مولی نقصان دي.اوکه داسلام راوړلونه هم دا آزاده نشي .نوبه دي کي د ام ولدنقصان دي.څکه چي دا به داسلام راوړلونه هم دغلامۍ په بند کي پاتي شی .نوداسي کاريکاردي چي نه سيخ اوسوزي اونه کباب.اصل مسئله خودا ده.چه ام ولد بغيردڅه عوض نه د مولی دمرګه روسته آزاديږی .خوچونکه په دي مسئله کي مولی لا مړشوي نه دي. نودا به د مکاتبه په حکم کي وی .لکه څنګه چي مکاتبه ترهغه وخته پوري نه آزاديږی .ترخوچه ني بدل کتابت نه وی ادا کړي.دغه ډول به دا ام ولد هم ترهغه وخته پوري نه آزاديږی .ترخوچه ني خپل قيمت نه وی ادا کړي.

﴿ولأنها إن لم تكن متقومة﴾ ددي خبري لپاره چي ام ولدبه مولی ته خپل قيمت ورکوی .دوهم دليل دا دي. چه موږ دا منو.چه ام ولد مال متقوم نه دي.خودومره ده چي د اسلام قبلولونه روسته دا قابل احترامه اوګرځيدله.نوداسلام د امله به دي ته شرافت ورکړي شی .چه دا به مال متقوم متصور کړي شی .اوودده قيمت به مولی ته ورکول واجب وی .

﴿كما في القصاص المشترك﴾ يعنی ام ولد داسي مال متقوم نه دي.لکه څنګه چي قصاص مال متقوم نه دي.خوچه کله د مقتول په اولياؤ کي يوکس قاتل معاف کړی .نود مقتول دنفس داحترام د امله به د پاته اولياؤ لپاره په قاتل باندي ديت واجبيږی .دغه ډول اګرچه ام ولد مال متقوم نه دي.خود اسلام په وجه دي ته يوعزت او احترام ملاؤ شو.اوددغه احترام د امله دا مال متقوم شو.يعنی مولی ته به خپل قيمت ورکوی.

﴿لا ترد قنة لأنها لو ردت قنة﴾ يعنی که بالفرض دا ام ولد دمولی په ژوند کي د خپل قيمت ورکولونه عاجزه وی .نودعجزباوجود دا دوباره نه وينځه کيږی .څکه چي ددي د آزاديدو سبب موجود دي.هغه دا چي دا ام ولدد مکاتبه پشان ده.او قاعده دا ده.کله چي سبب موجود شی .نود مسبب وجود ورسره لازمي وی .

ومن استولد أمة غيره بنكاح اوچاچه دبل چا وينځه په نکاح سره ام ولده کړه.[مثلاً زيدد بکرد وينځي سره نکاح کړي وه.اودهغي نه ني بچي پيدا شو] ثم ملكها اوبيا دي [زيد] دهغي وينځي [چه دده منکوحه ده] مالک شو صارت أم ولد له نودغه وينځه د ده [زيد] ام ولد شوه وقال الشافعي رحمه الله اوامام شافعي رح فرمائی لا تصير أم ولد له چي دا وينځه د هغه[ زيد] ام ولدنه ګرځی لو استولدها بملك يمين اوکه د وينځي نه ني په ملک يمين سره بچي پيدا شو [يعنی دده وينځه وه.اودده د منۍ نه ني بچي پيدا شو] ثم استحقت اوبيا هغه وينځه مستحقه شوه.[يعنی په حقيقت کي دبل چا وه] ثم ملكها اوبيا ني دي [زيد] مالک شی تصير أم ولد له عندنا نوزمونږ په نيزام ولدګرځی وله فيه قولان اوداامام شافعي رح په نيزبه دي کي دوې [دوه] روايتونه دی وهو ولد

الْمَغْرُورِاودا ماشوم ولدد مغرور دي لهٔ دامام شافعي رح دليل دا دي أَنَّهَا عَلِقَتْ بِرَقِيقٍ چي دا وينخه دغلام نه حملداره شوي ده .فَلَا تَكُونُ أُمَّ وَلَدٍ لَهُ نودهغه ام ولدنشى گرځيدي كَمَا إِذَا عَلِقَتْ مِنَ الزِّنَا لكه څنګه چي د زنا نه حملداره شى ثُمَّ مَلَكَهَا الزَّانِي اوبيا ئي دغه زناكارسړي مالك جوړ شى [نودا وينځه دهغه ام ولدنه ګرځي ] وَهٰذَا لِأَنَّ..اودا حكم[چه دهغه ام ولدنه ګرځي ] ځکه دي أُمُومِيَّةُ الْوَلَدِ بِاعْتِبَارِ عُلُوقِ الْوَلَدِ حُرًّا. چي مورام ولد په هغه وخت كي ګرځي .چه ددې په رحم كي كوم بچې وى .هغه آزاد وى لِأَنَّهُ جُزْءُ الْأُمِّ فِي تِلْكَ الْحَالَةِ ځکه چي دغه بچي چي دمورپه رحم كي وى .دموريوه برخه ده.[نوچه مورمملوكه وى .بچې به هم مملوك وى ] وَالْجُزْءُ لَا يُخَالِفُ الْكُلَّ ځکه چي جزء دکل نه مخالفت نه كوى

**حل اللغة:** ① **علوق:** په رحم كي د منئ ورتلل او د ماشوم د جوړيدو مرحلې پيل كيدل] ② **مغرور:** دهوكه وركړې شوې]

**تشريح:-** «ومن إستولد أمة غيره» په متن كي د مسئلې دوې [دوه] صورتونه ذكر دى .① زيدد عمرود وينځې په ملك نكاح سره مالك شو.اوبيا ئي په ملك يمين سره مالك اوګرځي .په دې صورت كي داحنافو رح په نيز د زيد دا منكوحه دده ام ولدګرځي .اودامام شافعي رح په نيزنه ګرځي .② دوهم صورت دا دې.چه زيدد خپلې وينځې سره جماع اوكړي .اودهغې ماشوم پيدا شى .اودده ام ولد شى .ددې نه روسته ثابته شى .چه دغه وينځه د بل چا ملكيت دې.دهغه ملكيت ته لاړه شى .اود استحقاق نه روسته زيد.بيا په اخستلو يا بل سبب سره دهغې وينځې مالك جوړ شى .نوپه دې دوهم صورت كي دامام شافعي رح نه دوې [دوه] روايتونه دى .په يو روايت كي ام ولدګرځي .اوپه بل روايت كي ام ولد نه ګرځي .

«وهو ولدالمغرور» ولد مغروردې ته وائى .چه يوكس ديوې ښځې سره په داسې حالت كي وطى اوكړي . چې يا خودغه ښځه دده وينځه وى .اويادده منكوحه وى .اوده ورسره وطى قصداً كړې وى .اوددې ښځې نه ئې بال بچ هم پيدا شى .ددې نه روسته يوبل كس دا دعوى اوكړله.چه دا ښځه دهغه وينځه ده.اوقاضى دهغه لپاره فيصله اوكړله.نودغه بال بچ به په قيمت ادا كولوسره آزاد شى .اودې كس ته مغرور وائى .ځکه چې ده په غلطئ دبل دوينځې سره وطى كړې ده.اوكوم بچې چې پيدا شوې وى .هغه ته ولد مغرور وائى .

«لأن أمومية الولد» يعنى وينځه په هغه وخت كي ام ولدګرځي .چه ددې په رحم كي كوم بچې وى .هغه د دې وينځې د مولى دنطفې نه پيدا شوې وى .اومولى آزاد وى .اوكومه مسئله چې زيربحث، ده.په دې كي چې وينځه په كوم حالت كي حملداره ده.نوپه هغه وخت كي دا وينځه د هغه كس په ملكيت كي نه ده.اوهركله چې په ملكيت كي نشوه.نوام ولدهم نه ګرځي .ځکه چې دبل د وينځې سره وطى كول اوبيا دهغه وطى نه بچې پيدا كيدل د استيلاد سبب نه وى .

وَلَنَا اوزمونږدليل دا دي أَنَّ السَّبَبَ هُوَ الْجُزْئِيَّةُ چي دآزادئ سبب جزئيت دي عَلَى مَا ذَكَرْنَا مِنْ قَبْلُ لكه څنګه چي موږ وړاندې ذكركړې دى وَالْجُزْئِيَّةُ إِنَّمَا تَثْبُتُ بَيْنَهُمَا اوجزئيت د دې دواړو[مولى اوام ولد] په مينځ كي ځکه ثابتيږى بِنِسْبَةِ الْوَلَدِ الْوَاحِدِ إِلَى كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا كَمَلًا چي په كامله طريقه ددې يوولدنسبت دواړو ته كيږى .وَقَدْ ثَبَتَ النَّسَبُ اونسب ثابت دي فَتَثْبُتُ الْجُزْئِيَّةُ نوجزئيت به هم ثابت وى بِهٰذِهِ الْوَاسِطَةِ بِهٰذِهِ الْوَاسِطَةِ د بچي په واسطه سره

**تشريح:-** يعنى كله چي دوينيزي په رحم كي دمولى د منئ نه ماشوم پيدا شى . نو دغه ماشوم د موردبدن يوه برخه شوه.اوچونكه دا حمل آزاد دې.ځکه چي د آزاد سړي د نطفه نه پيدا شوې دې.نودغه ډول به وينځه هم آزاده شى .ځکه چي جزء (چه حمل دې) دکل نه (چه مور ده ) مخالفت نه كوى ]



بِخِلَافِ الزِّنَا. [اوكه ته په زنا قياس كوې.كه زانيه د وينځې سره زنا اوكړله.اوبيا ئي مالك شو.نودغه وينځه دده ام ولدنه ګرځي .نو] په خلاف د زنا لِأَنَّهُ لَا نَسَبَ فِيهِ لِلْوَلَدِ إِلَى الزَّانِي ځکه چې په زنا كي دبچي نسبت زناكارته نه كيږى [چه دا بچې دفلانى خوئې دي] وَإِنَّمَا يُعْتَقُ عَلَى الزَّانِي إِذَا مَلَكَهُ البته كله چې زانى د هغه بچي مالك شى .كوم چې دده نه پيدا شوې وى .نوهغه آزاديږى .لِأَنَّهُ جُزْؤُهُ حَقِيقَةً بِغَيْرِ وَاسِطَةٍ ځکه چي بغيرد څه واسطه نه هغه ددې زناكار مولى حقيقى جزء دې[ځکه چي دده د نطفې نه پيدا شوې دې

**تشريح:-** امام شافعي رح چې د زيربحث مسئلې قياس د زنا په صورت باندې كوى .نودا قياس صحيح نه دې. ځکه چې په زيربحث مسئله كي چې ام ولدد چا نه حملداره شوې ده.ددې حمل نسب دهغه نه ثابتيږى .اوپه زنا كي ئې د زناكارنه نسب نه ثابتيږى .

نَظِيرُهُ ددې نظير دې [چه د جزئيت باوجود ترې نه نسب ثابتيږى اونه آزاديږى ] داسې مَنِ اشْتَرَى أَخَاهُ مِنَ الزِّنَا چې يوكس [زيد] خپل ورور[عمرو] د زنا نه [يعنى چې دده پلارئې مورسره زنا كړې وى .اودې ترې پيدا شوې وى ] واخلى لَا يُعْتَقُ نودغه كس [عمرو] نه آزاديږى لِأَنَّهُ يُنْسَبُ إِلَيْهِ بِوَاسِطَةِ نِسْبَتِهِ إِلَى الْوَالِدِ ځکه كه دې مشترى [زيد] كوم نسبت چې ده [عمرو] ته كيږى .نوهغه د پلار په واسطه سره كيږى .[چه د دواړو پلار يودې] وَهِيَ غَيْرُ ثَابِتَةٍ اوچونكه دهغه نه ئې نسب ثابت نه دې يعنى دعمرونسبت د زيدپلار ته نه كيږى .چه دا عمرود زيد دپلار خوئې دې.نوچه نسب ثابت نشو.ځکه نه آزاديږى .نودا معلومه شوه چې د زيربحث مسئلې قياس د زنا په مسئله صحيح نه دې]

**تشريح:-** ددې نظيرچه جزئيت وى خوچه نسب ثابت نه وى .نوازادى نه واقع كيږى .دا دې چې خالد د يوې وينځې سره زنا اوكړله.اودهغې نه عمرو پيدا شو.بيا د خالد خوئې چې زيد نئې نوم وو.هغه دا عمرو واخستلو.چه دده د زنا په واسطه ورور وو.نودا عمرونه آزاديږى .حالانكه رووز نئې دې.اوحديث مبارك دا دې.چه كله يوكس د داسې غلام مالك جوړ شو.چه هغه دده محرم وى .نودغه غلام اومملوك به آزاديږى . خو په دې مسئله كي عمرو نه آزاديږى .ځکه چې د زيد اوعمروپه مينځ كي چې د نسب كومه واسطه ده. هغه خالد دې.اودخالد نه ددې عمرو نسب نه دې ثابت.نوځکه عمرونه آزاديږى .نوګوره په دې مسئله كي ددې باوجود چې جزئيت شته.خوچونكه نسب نه ثابتيږى .نوعمرو نه آزاديږى .اوكومه مسئله چې زيربحث ده.هلته جزئيت اونسب دواړه ثابت دى .نودامام شافعي رح قياس صحيح نشو.

وَإِذَا وَطِئَ جَارِيَةَ ابْنِهِ چې يوكس د خپل خوئې د وينځې سره وطى اوكړې فَجَاءَتْ بِوَلَدٍ ودهغې بچې پيدا شى فَادَّعَاهُ ودې دهغه دعوى اوكړې چې دا زما خوئې دې ثَبَتَ نَسَبُهُ مِنْهُ نوددغه بچي نسب ددې پلار نه ثابتيږى وَصَارَتْ أُمَّ وَلَدٍ لَهُ ودغه وينځه دپلار ام ولدشوه وَعَلَيْهِ قِيمَتُهَا اوپه پلار باندې دوينځې قيمت دى.[چه هغه به خپل خوئى ته وركوى ] وَلَيْسَ عَلَيْهِ عُقْرُهَا اوپه پلار باندې دهغې وينځې عقر نشته. وَلَا قِيمَةُ وَلَدِهَا اونه پرې دبچي قيمت شته وَقَدْ ذَكَرْنَا الْمَسْأَلَةَ بِدَلَائِلِهَا فِي كِتَابِ النِّكَاحِ مِنْ هٰذَا الْكِتَابِ اوموږ دا مسئله ددې كتاب په كتاب النكاح كي ددلائلوسره ذكركړې ده وَإِنَّمَا لَا يَضْمَنُ قِيمَةَ الْوَلَدِ. اوپه پلارباندې د بچي قيمت ځکه نه واجبيږى لِأَنَّهُ انْعَلَقَ حُرَّ الْأَصْلِ لِاسْتِنَادِ الْمِلْكِ إِلَى مَا قَبْلَ الْاِسْتِيلَادِ ځکه چې په وينځه باندې د پلار ملكيت د وطى كاوه نه وړاندې ثابت وو وَإِنْ وَطِئَ أَبُ الْأَبِ اوكه نيكه [زيد] دنمسى [بكر] وينځې سره وطى اوكړله مَعَ بَقَاءِ الْأَبِ اود بكرخپل پلار[خالد] موجود وو.[اونيكه دعوى اوكړله.چه دا بچې زما دې.] لَمْ يَثْبُتِ النَّسَبُ نو دنيكه نه نسب نه ثابتيږى لِأَنَّهُ لَا وِلَايَةَ لِلْجَدِّ حَالَ قِيَامِ الْأَبِ ځکه چې پلار موجود وى .نونيكه ته د نمسى په مال كي د ولايت حق نشته وَلَوْ كَانَ الْأَبُ مَيِّتًا البته كه پلار[خالد] مړ وى يَثْبُتُ مِنَ الْجَدِّ نودنيكه [زيد] نسب ثابتيږى . كَمَا يَثْبُتُ مِنَ الْأَبِ لكه څنګه چې د دې بچي نسب د پلار نه ثابتيږى .[په هغه صورت كي

كوم چي ذكرشو] لِظُهُورِوِلَايَتِهِ عِنْدَ فَقْدِ الْأَبِ ځكه چي كله پلار [خالد] نه وي .نودنيكه [زيد] ولايت ثابت دي وَكُفْرُالْأَبِ وَرِقُّهُ بِمَنْزِلَةِ مَوْتِهِ اودپلار [خالد] كفراوغلامي د مرګ پشان ده.[نو دنيكه يعني زيد د وطي كولوپه مسئله كي كه بالفرض پلار يعني خالد كافروي يا غلام وي .نود بچي نسب د نيكه [زيد] نه ثابتيږي ] لِأَنَّهُ قَاطِعٌ لِلْوِلَايَةِ ځكه چي مرګ د هغه[ ولايت] ختمونكې دې.[كوم چي پلار ته د ځوی په مال كي حاصل وي .نودغه ډول كفراوغلامي هم د ولايت ختمونكې دی ]

تشريح:- «[عقرها]» دعقرنه هغه مال مراد دې.كوم چي دمهر پشان په هغه وطي كي لازميږي .په كوم كي چي حدزنا نه جاري كيږي .په زيربحث مسئله كي هم زنا شته.خوپه پلارباندې حدزنا نه جاري كيږي . ځكه چي نبي ﷺ يوصحابي ؓ ته اوفرمائيل. «[ أنت ومالك لأبيك]» ته اوستا مال ستا دپلار دې.چونكه وينځه هم مال دې.نوددې حديث نه په ظاهره دا معلوميږي .چه لكه څنګه پلار دځوئي په نورو مالونو كي تصرف كولې شي .دغه ډول به په وينځه كي هم تصرف كولې شي .چونكه دا شبه موجود ده.ددې امله په حد جاري كولوكي قانون دا دی.كه دجرم په ثبوت كي شك اوشبه پيدا شوه.نوحد ساقطيږي .

وَإِذَاكَانَتِ الْجَارِيَةُ بَيْنَ شَرِيكَيْنِ اوچه يوه وينځه د دووكسانوپه مينځ كي شريكه وي فَجَاءَتْ بِوَلَدٍ نودهغې بچي پيدا شو فَادَّعَاهُ أَحَدُهُمَا اوپه دې دوو شريكانوكي يودهغه دنسب دعوی اوكړله.[چه دا بچي زما دې ثَبَتَ نَسَبُهُ مِنْهُ نود دغه مدعی نه د بچي نسب ثابتيږي . لِأَنَّهُ لَمَّاثَبَتَ النَّسَبُ فِي نِصْفِهِ ځكه چي په نصف بچي كي نسب ثابت شو ځكه چي نيمه وينځه دده په ملكيت كي ده لِمُصَادَفَتِهِ مِلْكَهُ ثَبَتَ فِي الْبَاقِي ضَرُورَةً نو [دبچي ] په پاته نيمه برخه كي به خامخا نسب ثابتيږي )أَنَّهُ لَايَتَجَزَّئ ځكه چي نسب نه تقسيميږي [چه ماشوم يو وي .اونيم نسب ئې د زيد شي اونيم دعمرو] لِمَا أَنَّ سَبَبَهُ لَايَتَجَزَّأُوَهُوَالْعُلُوقُ اونسب ځكه نه تقسيميږي .چه د نسب سبب چي علوق دې هغه نه تقسيميږي إِذِالْوَلَدُالْوَاحِدُلَايَتَعَلَّقُ مِنْ مَاءَيْنِ ځكه چي يوبچې د دووكسانود منئ نه پيدا كيږي وَصَارَتْ أُمَّ وَلَدٍلَهُ اودغه وينځه د مدعی شريك ام ولد شوه لِأَنَّ الِاسْتِيلَادَلَايَتَجَزَّأُعِنْدَهُمَا ځكه چي استيلاد [چه وينځه ام ولد شي ] دصاحبينو ؒ په نيز نه تقسيمږي .[چه نيمه دې ام ولد وي اونيمه دې وينځه وي ] داد صاحبينو ؒ مذهب دې.[يعني دصاحبينو ؒ په نيز چي څنګه د وينځې بچې پيدا شو.اويوشريك دعوی د نسب اوكړله.نودغه وينځه په يوځل ام ولداوګرځيدله.د ام ولد ګرځيدو لپاره دوو مرحلوته اړتيا نشته]

حل اللغة:① مصادفة: مقابل كيدل ② يتجزئ: تقسيميږي ]

تشريح:- مسئله د ژباړه اواضافي قيوداتود امله آسانه ده.

وَعِنْدَأَبِي حَنِيفَةَرَحِمَهُ اللَّهُ اودامام ابوحينفه ؒ په نيزد يَصِيرُنَصِيبُهُ أُمَّ وَلَدٍلَهُ مدعی شريك چي كومه برخه ده.صرف هغه نيمه برخه د مدعی لپاره ام ولدګرځي .اوچه نيمه برخه ام ولد شي ثُمَّ يَتَمَلَّكُ نَصِيبَ صَاحِبِهِ نوددې نه روسته دا مدعی د خپل شريكوال دحصې [چه نيمه ده] مالك جوړيږي إِذْهُوَقَابِلٌ لِلْمِلْكِ ځكه چي دغه پاته نيمه برخه د مملوكيت صلاحيت لري وَيَضْمَنُ نِصْفَ قِيمَتِهَا اودشريكوال دحصې دقيمت تاوان به په دې مدعی وي [هغه ته به د نيمې وينځې قيمت وركوي ] لِأَنَّهُ تَمَلَّكَ نَصِيبَ صَاحِبِهِ ځكه چي دې دخپل شريكوالي د برخې نيمې وينځې مالك شو لَمَّا اسْتَكْمَلَ الِاسْتِيلَادَ اومالك ځكه شو.چه هغه وينځه ټوله [كه دده برخه وي اوكه دده د شريك برخه وي ] د مدعی ام ولد شوه وَيَضْمَنُ نِصْفَ عُقْرِهَا اوپه مدعی شريك باندې به د دغه موطوءه وينځې نيم عقرهم تاوان وي چې نيم عقربه خپل شريكوال ته وركوی لِأَنَّهُ وَطِئَ جَارِيَةً مُشْتَرَكَةً ځكه چي ده مشتركې وينځې سره وطي كړې ده

حل اللغة:① عقر: مهر ② يضمن: ضامن كيږي ③ استيلاد: ام ولده جوړول]



تشريح:- قاعده دا ده.كه يوه وينځه د دووكسانوپه شريكه وي .نوپه دې دواړوكي د يو لپاره هم دې سره وطی كول جائز نه دی .ځكه چي اشتباه دنسب راځي .په زيربحث مسئله كي چې د وينځې بچې پيدا شی .اويوكس ددې بچي دنسب دعوی هم اوكړی .نوپكاردا ده.چه په ده باندې حدزنا جاری شوې وې.ځكه چې ده لپاره د مشتركه وينيز سره وطی كول حرام وو.البته دلته يوه شبه موجود وه.هغه دا چې وينځې سره وطی كول جائزدی .خودلته حرمت د شريك د امله راغلې دې.نوددې شبه په وجه حد ساقط شو.خوچونكه دخپل شريكوال په ملكيت كي تصرف شوې دی.نوهغه ته به د دې وطی تاوان وركوی .چه عقرورته وئيلې شی .

فَيَتَعَقَّبُهُ الْمِلْكُ فِي الْمِلْكِ يَثْبُتُ حُكْمًا لِلِاسْتِيلَادِ ځكه چې د استيلاد د حكم د امله د مدعی ملكيت ثابتيږي نَصِيبِ صَاحِبِهِ اوددې نه روسته [چه وينځه د مدعی ام ولد شی ] د دې مدعی دخپل شريكوال په برخه كي هم ملكيت ثابتيږي

تشريح:- قاعده دا ده.چه وينځه هله ام ولد ګرځي .چه ددې مولی ورسره وطی اوكړی .اودا دهغه نه حملداره شی .په زيربحث مسئله كي كه وينځه د مدعی شريك ام ولدګرځي .نوددې لپاره ضروری ده.چه وينځه دهغه مملوكه وی .حالانكه دمدعی شريك ملكيت خوپه نيمه وينځه كي دې.نوداسې هم نشی كيدې.چه نيمه وينځه ام ولد شی اونيمه شريكوال په ملكيت كي پاتې شی .ځكه چې استيلاد ويش نه قبلوی .نوداستيلاد تقاضادا ده.چه په ټوله وينځه دمدعی ملكيت وی .ددې امله مونږ وايو.چه په نيمه وينځه خود مدعی ملكيت د وړاندې نه قائم وو.اوداستيلاد د امله په پاته نيمه وينځه باندې هم دده ملكيت ثابت شو.

بِخِلَافِ الْأَبِ په خلاف دپلارد مسئلې إِذَااسْتَوْلَدَجَارِيَةَ ابْنِهِ چې هغه د ځوی . وينځه ام ولد جوړه كړی [نوهلته په پلارباندې عقر نشته. اوپه زيربحث مسئله كي په شريكوال عقرشته] لِأَنَّ الْمِلْكَ هُنَالِكَ يَثْبُتُ شَرْطًا لِلِاسْتِيلَادِ دپلارپه مسئله كي استيلاد ځكه ثابت شوې دې.چه داستيلاد لپاره ملكيت شرط دې فَيَتَقَدَّمُهُ اوشرط په مشروط باندې مقدم وی [نود وطی كولوپه وخت كي په ټوله وينځه دپلارملكيت ثابت وو] فَصَارَوَاطِئًا مِلْكَ نَفْسِهِ نوپلارهم دخپلې مملوكې وينځې وطی كونكې شو وَلَايَغْرَمُ قِيمَةَ وَلَدِهَا اوپه پلارباندې دبچي د قيمت تاوان نشته[چه خپل ځوی ته تاوان وركړی لِأَنَّ النَّسَبَ يَثْبُتُ مُسْتَنِدًاإِلَى وَقْتِ الْعُلُوقِ ځكه چې نسب دهغه وخت نه ثابتيږي .په كوم وخت كي چې علوق راغلې وی فَلَمْ يَتَعَلَّقْ شَيْءٌمِنْهُ عَلَى مِلْكِ الشَّرِيكِ] نودپلارپه مسئله كي علوق د شريكوال په ملكيت كي نه دې شوې.[بلكه د وړاندې نه په وينځه د پلارملكيت ثابت وو]

تشريح:- «[بخلاف الأب]» يعنی كه مدعی پلار وی .نوپه هغه باندې عقرنه لازميږي .اوپه زيربحث مسئله كي چې مدعی شريكوال دې. عقرلازميږي ځكه چې په كوم وخت كي دوينځې علوق كيدلو.نوپه هغه وخت كي هغه د خپل مولی دپلار په ملكيت كي وه.ځكه چې دنبی ﷺ ارشاد دې.د ځوی مال د پلار مال وی .اوچه د يوسړی نه خپله مملوكه وينځه حملداره شی .په هغه باندې د وطی تاوان يعنی عقرنه وی .اوپه زيربحث مسئله كي په مدعی شريكوال باندې دخپل شريك لپاره عقرځكه لازم دې.چه دعلوق په وخت كي مدعی دټولې وينځې مالك نه وو.بلكه ده د خپل شريكوال په برخه كي د زنا د فعل ارتكاب كړې دې.اودهغه په برخه باندې دمدعی شريكوال ملك خود علوق نه روسته راغلې دې.ځكه به په مدعی باندې عقرلازم وی .

## د دواړو مدعيانو نه د نسب ثبوت

وَإِنِ ادَّعَيَاهُ مَعًا اوكه دواړو شريكانوپه يوځاني دعوی اوكړله ثَبَتَ نَسَبُهُ مِنْهُمَا نود دواړو نه ئې نسب ثابتيږي مَعْنَاهُ ددې مطلب دا دی إِذَاحَمَلَتْ عَلَى مِلْكِهِمَا چې ددې دواړو په ملكيت كي وينځه حملداره شی . وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللَّهُ اوامام شافعی ؒ فرمائی ]يُرْجَعُ إِلَى قَوْلِ الْقَافَةِ چې دقافيه شناس قول ته به رجوع كولای شی لِأَنَّ إِثْبَاتَ النَّسَبِ مِنْ شَخْصَيْنِ ځكه چې په يووخت كي د دوو كسانونه نسب ثابتيدل نه كيږي مَعَ عِلْمِنَا

أَنَّ الْوَلَدَ لَا يَتَخَلَّقُ مِنْ مَاءَيْنِ مُتَعَذِّرٌ خکه چې موږ ته علم دې.چه ولد د دوو کسانود منئ نه پیدا کیدل متعذر دی ۞ عَمِلْنَا بِالشَّبَهِ نوموږ به په مشابهت عمل کوو[چه د چا سره د بچی شکل شباهت زیات نزدې وو.دهغه خخه به نې نسب ثابتیږی وَقَدْ سُرَّ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ بِقَوْلِ الْقَائِفِ فِي أُسَامَةَ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالَى عَنْهُ[۱] اود اسامه بن زید﷜ په اړه کې نبی ﷺ د قافیه شناس په قول باندې خوشحاله شوې وو.[د نبی ﷺ خوشحالی ددې خبرې دلیل دی.چه دقافیه شناس قول معتبردې]

حل اللغة: ① القافية هغه کس ته وائی .چه قافیه شناخت وی .د شکل شبهاهت نه پیژنی .چه دا کس دچا سره مشابه دې.اودچا نه نې نسب ثابتیږی .② محضر: حضور]

تشریح:- په دې کې دحضرت عائشه رضی روایت ته اشاره ده.حضرت عائشه رضی فرمائي . چې یوخل مجززمدلجی نومې قافیه شناس درسول اللّٰه ﷺ په خدمت کې حاضرشو.په دغه وخت کې حضرت اسامه اودهغه پلارزید﷜ دواړه ویده (اوده) وو.ددوی دواړو سرونه په پټو (څادر) کې پټ وو.اوښپې نې ښکاره وې.چه دغه قافیه شناس ددواړو ښپې اولیدلې.نوددې خبرې توثیق نې اوکړلو.چه دا ښپې دپلار اوځوی دی .نبی ﷺ د قافیه شناس په دې خبره ډیرخوشحاله شو.اوحضرت عائشه رضی ته نې دقافیه شناس د قول خبر ورکړلو.دابوداود په روایت کې دا دی .چه داسامه رنګ توراودزیدرنګ سپین وو.امام شافعی په دې حدیث باندې استدلال کوی .چه په زیربحث مسئله کې به د قافیه شناس قول ته اعتبار وی .څکه چې نبی ﷺ دقافیه شناس قول نقل کړلو.اوپه هغې نې څه انکاراونکړلو.

وَلَنَا كِتَابُ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالَى عَنْهُ إِلَى شُرَيْحٍ فِي هٰذِهِ الْحَادِثَةِ اوزمونږ[داحنافو رح] دلیل په داسې واقعه کې د حضرت عمر﷜ شریح قاضی رح ته خط لیږل دی .[حضرت عمر﷜ ورته په خط کې لیکلی وو لَبَّسَا فَلُبِّسَ عَلَيْهِمَا چه﷜ دې دواړو اشتباه پیدا کړې ده څکه چې هریوشریك د نسب دعوی کوی .حالانکه نسب د یوکس نه ثابتیږی ] نوپه دوی دې هم اشتباه پیدا کړې شی وَلَوْ بَيَّنَا لَبُيِّنَ لَهُمَا [.اوکه دوی بیان کړې وې.[چه ددې بچی نسب دچا نه دې] نودوی ته به هم بیان شوې وو [او یوته به وئیلی شوی وو.چه بچې ستا دې.هرکله چې ددوی دارخه بیان نشته.نوحکم دا دې.چه] هُوَ ابْنُهُمَا يَرِثُهُمَا دا ددې دواړو خونې دې.[که دوی مړه شول.نو] دا ماشوم به ترې میراث اوړی .[څکه چې د دوی خونې دې.اوخونې دپلار نه میراث اوړی .اوکه دې مړ شو.نو] وَيَرِثَانِهِ وَهُوَ لِلْبَاقِي مِنْهُمَا [۲]دوی به ترې میراث اوړی .[څکه چې د خوی په مال کې دپلار برخه وی .اوکه په دواړومدعیانو شریکانوکې یومړ شو.نو] دا ماشوم دهغه چا په ملکیت کې راځی .چه څوك ژوندې پاتې شی وَكَانَ ذٰلِكَ بِمَحْضَرٍ مِنَ الصَّحَابَةِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ أَجْمَعِينَ اودحضرت عمر﷜دا خط لیږل د صحابو﷜ د یوې ډلې په موجودګئ کې وو.[نودا اجماع سکوتی شوه.اواجماع سکوتی حجت وی

تشریح:- په زیربحث مسئله کې د احنافو رح استدلال دحضرت عمر﷜ په فتوی باندې دې.د فتوی تفصیل دا دې.چه دوو کسانویوې وینځې سره په هغه وخت کې وطی اوکړله.چه هغه د حیض نه پاکه شوې وه.اوددغه وطی نه دهغې ماشوم پیدا شو.دواړو کسانو دبچی د نسب دعوی اوکړله.چه دا زما بچې دې.دا مقدمه حضرت عمر﷜ ته پیش شوه.هغوی درې قافیه شناس راوغوښتل.درې واړو ددې خبرې ګواهی ورکړله.چه په ماشوم کې د دواړو مدعیانو سره مشابهت موجود دې.حضرت عمر﷜ په خپله هم قافیه شناس وو.نوهغوی

۱)من حديث عائشة(( اخرجه البخارى فى المناقب باب ۲۳ وفضائل أصحاب النبىﷺ باب ۱۷ والفرائض باب ۳۱ ومسلم فى الرضاع رقم ۳۸ وأبواود فى الطلاق باب ۳۱ رقم ۲۲۶۷ والترمذى فى الولاء باب ۵ والنسائى فى الطلاق باب ۵۱ رقم ۳۲۶۹ وابن ماجه فى الأحكام باب ۲۱ رقم ۲۳۴۹ وأحمد فى المسند ۸۲/۶)_
۱) قال الزيلعى(رح) أخرجه البيهقى بنقص يسير ثم نقل الواقعة نصب ا الرأية۴۴۳/۳)_



اوفرمائیل.چه په شیدې باندې تور،زیړاو برګ سپی خیژی .خوپه انسانانوکې ما دا نه وو لیدلې.اوس مې دا هم اولیدل.ددې نه روسته نې حکم اوکړلو.چه دا ماشوم د دواړو مدعیانوبچې دې.اوددې دواړووارث به وی .اودا دواړه مدعیان به دده وارثان وی .اوپه دواړوکې چې کوم ژوندې پاتې شو.دې به دهغه وی .ددې حکم نتیجه دا راوتله.چه د دې بچی دتربیت تولې ذمه وراّیانې به په دواړو په شریکه وی .

وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ مِثْلُ ذٰلِكَ[۱] مزید دا چې ] دحضرت علی ﷜ نه هم [په داسې مقدمه کې] داسې حکم منقول دې.

تشریح:- کله چې حضرت علی ﷜ په یمن کې وو.نودرې کسانود یوې ښځې سره هم په طهرکې وطی کړې وه.اودهغې نه ماشوم پیدا شو.حضرت علی ﷜ د درې واړو په مینځ کې خسنړې واچولو.دکوم په نوم چې خسنړې راووتلو.نودهغه په نسب کې نې ګډ کړلو.اودوې [دوه] برخې نفقه نې په هغه باندې لازمه کړه.[چه ته به ددې بچی په تربیت کې دریمه برخه خرچه برداشت کوې] ددې اثر نه هم ثابته شوه.که چرته د نسب په ثبوت کې د قافیه شناس قول ته اعتبار وې.نوحضرت علی ﷜ به ولې خسنړې اچولې.

## د دواړونه د ثبوت نسب دلیل

وَلِأَنَّهُمَا اسْتَوَيَا فِي سَبَبِ الْاِسْتِحْقَاقِ او[د دواړونه د نسب ثابتیدوبل دلیل دا دې.چه] دا دواړه داستحقاق په سبب کې برابر دی .[چه ملکیت دې] فَيَسْتَوِيَانِ فِيهِ نوپه حق اخستلوکې به هم برابر وی وَالنَّسَبُ اونسب وَإِنْ كَانَ لَا يَتَجَزَّىٰ اګرچه ویش نه قبلوی .[یوماشوم ددوو کسانوخونې نشی کیدې.] وَلٰكِنْ تَتَعَلَّقُ بِهِ أَحْكَامٌ مُتَجَزِّئَةٌ خوپه نسب باندې داسې احکام مرتب کیږی .چه هغه ویش قبلوی فَمَا يَقْبَلُ التَّجْزِئَةَ نوکوم احکام چې ویش قبلوی [لکه میراث اوړل شو چې د خوی په مال کې د پلارخومره برخه کیږی يَثْبُتُ فِي حَقِّهِمَا عَلَى التَّجْزِئَةِ نوهغه به په دواړوشریکانوتقسیمولې شی وَمَا لَا يَقْبَلُهَا ] اوچه کوم ویش نه قبلوی .[لکه نسب] يَثْبُتُ فِي حَقِّ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا كَمَلًا نوهغه به د دواړو په مینځ کې پوره پوره ویش کولې شی .داسې به وی كَأَنْ لَيْسَ مَعَهُ غَيْرُهُ چې هډو ده سره بل څوك شریك نشته [نوپه زیربحث مسئله کې به هرمدعی د ماشوم پلاروی .دا نه چې نیم ماشوم به دیومدعی زوې وی .اونیم دبل] إِلَّا إِذَا كَانَ أَحَدُ الشَّرِيكَيْنِ أَبَا الْآخَرِ البته که په دواړو شریکانوکې یو[زید] دبل [عمرو] پلار وی أَوْ كَانَ أَحَدُهُمَا مُسْلِمًا اویا یو[زید] مسلمان وی وَالْآخَرُ ذِمِّيًّا اوبل [عمرو] ذمی وی نوپه دې صورت کې به نسب د یونه ثابتیږی .په دواړو صورتونوکې زیددې.اودا دواړونه نسب ثابت کیدل] لِوُجُودِ الْمُرَجِّحِ فِي حَقِّ الْمُسْلِمِ الْاِبْنِ خکه چې دمسلمان په حق کې مرجح موجود دې [چه ده ته په کافرباندې ترجیح ورکوی .اونسب دده نه ثابتیږی وَهُوَ الْإِسْلَامُ اوهغه اسلام دې وَفِي حَقِّ الْأَبِ اودپلار په حق کې هم مرجح موجود دې[چه ده ته به په خوی باندې ترجیح ورکولې شی .اونسب به نې دپلارنه ثابتیږی وَهُوَ مَا لَهُ مِنَ الْحَقِّ فِي نَصِيبِهِ اوهغه مرجح دا دې.چه دپلار دخوی په برخه کې حق شته.[لکه څنګه چې وړاندې تیرشوی دی .چه دخوی مال دپلارمال وی ] وَسُرُورُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيمَا رُوِيَ لِأَنَّ الْكُفَّارَ كَانُوا يَطْعَنُونَ فِي نَسَبِ أُسَامَةَ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالَى عَنْهُ اونبی ﷺ [چه د اسامه بن زید﷜ په اړه کې د قافیه شناس په قول خوشحاله شوې وو نو] دنبی ﷺ خوشحالی ددې امله وه.چه کافرانوبه دحضرت اسامه ﷜ په نسب باندې عیب لګولو.[ چې اسامه د زید﷜ خونې نه دې] نودقافیه شناس قول دهغوی د عیب لګولو ختمونکې وو.[چه داسې نه ده.لکه څنګه چې خلګ وائی .چه اسامه﷜ د زید﷜ زوې نه دې وَكَانَ قَوْلُ الْقَائِفِ مُقَطِّعًا لِطَعْنِهِمْ فَسُرَّ بِهِ] نوخکه نبی ﷺ دقافیه شناس په قول خوشحاله شو.دا نه چې دقافیه شناس په قول نسب ثابت شو.بلکه دهغه نسب خود وړاندې نه ثابت وو.البته د نسب دثبوت لپاره دقافیه شناس قول تائید شو.

۲)أخرجه الطحاوى(رح) فى شرح الآثار ۲۹۴/۲)_

حل اللغة: ① الطعن: په یوځیز کي عیب بیانول، پیغور ورکول ② نصیب: حصه ]
تشریح:- دڅیارې اواضافي قیوداتوڅخه مطلب واضح دي.

وَكَانَتِ الْأَمَةُ أُمَّ وَلَدٍ لَهُمَا او وینځه د دواړو مدعیانو لپاره ام ولد شوه لِصِحَّةِ دَعْوَةِ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا فِي نَصِيبِهِ فِي الْوَلَدِ ځکه چې په دې دواړو کې دهریودعوی په خپله برخه کي صحیح شوه فَيَصِيرُ نَصِيبُهُ مِنْهَا أُمَّ وَلَدٍ لَهُ تَبَعًا لِوَلَدِهَا .نودهریوکس چې په وینځه کي کومه برخه وی .هغه به دده ام ولد شي وَعَلَى كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا نِصْفُ الْعُقْرِ او په دواړو کي په هریو مدعی باندې [دیوبل دپاره] نیم عقردی قِصَاصًا بِمَا لَهُ عَلَى الْآخَرِ دا به دهغه حق بدله شي .کوم چې دده په بل مدعی باندې دي وَيَرِثُ الِابْنُ مِنْ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مِيرَاثَ ابْنٍ كَامِلٍ اوځوئی به په دواړومدعیانوکي دهریونه د کامل ځوی میراث اوړي

تشریح:- مسئله دا ده.چه یوه وینځه د دووکسانوپه مینځ کي شریکه وی . نو د یو لپاره هم دې سره وطی کول جائز نه دی .خودې دواړوشریکانو هغه وطی کړله.که وطی ته نظراوکړې شي . نوپه هریوباندې حدزنا جاری کول پکار وو.البته په وینځه کي نیمه وینځه دهریوشریك ملکیت دي.اودخپلې مملوکۀ سره وطی کول جائزدی .نودې یوقسم شبه پیدا کړله.اوقصاص په شبه سره دفع کولې شي .نوحدزنا په ځائې به په هریوشریك باندې دخپل شریك لپاره عقر[یعنی د وطی معاوضه] لازمه شي .مثلاً د عقرقیمت پنځه سوه روپۍ مقررکړې شو.نود یوشریك په بل باندې پنځه سوه روپۍ عقرشو.اود دغه بل په ده باندې پنځه سوه روپۍ عقرلازم شو.نودواړه به یوبل ته خپله خپله برخه پرېږدی .یوبه دبل نه د عقرمطالبه نه کوی .

لِأَنَّهُ أَقَرَّ لَهُ بِمِيرَاثِهِ كُلِّهِ ځکه چې ده ورله په خپل پوره میراث باندې اقرارکړې دي وَهُوَ حُجَّةٌ فِي حَقِّهِ اودا اقرارپه ده باندې حجت دي وَيَرِثَانِ مِنْهُ مِيرَاثَ أَبٍ وَاحِدٍ اودغه ډول دواړه مدعیان به د ځوی نه د یوپلارمیراث وړي .[که دغه زوې مړ شي .نود یوپلارچه څه برخه دده په میراث کي کیږي .هغه به دا دواړه مدعیان په مینځ کي تقسیموی ] لِاسْتِوَائِهِمَا فِي النَّسَبِ ځکه چې دواړه په نسب کي برابردی .[دهریومدعی ځونې دي.نوچه په نسب کي برابرشو.نوپه استحقاق دمیراث کي به هم برابروی .څوچونکه په عامه قاعده کي میراث د یوپلاروی .نوهم د یوپلارحصه به په دې دواړومدعیانوباندې تقسیمولې شي ] كَمَا إِذَا أَقَامَا الْبَيِّنَةَ لکه څنګه چې دوې [دوه] نفر[په یوځیزباندې دعوی اوکړي .یووائی چې داځیز زما دې اوبل وائی .چه دا زما دې.اودواړه په خپله دعوی باندې] ګواهان قائم کړي .[نودغه ځیزبه د دواړو په مینځ کي نیم نیم تقسیمولې شي .ځکه چې د ملکیت په ثبوت کي دواړه برابردی .یعنی هریوګواهان قائم کړل

تشریح:- ددې عبارت مطلب دا نه دې.چه هریومدعی براه راست دا اقرار وکړلو .چه دا ماشوم زما وارث دې.بلکه هریو د ماشوم د نسب اقراراوکړلو.چه دا زما زوې دې.نوچه د نسب اقرارئې اوکړلو.په دې کي د میراث اقرارضمناً راغلو.ځکه چې زوې شي .نوهغه دخپل پلارنه میراث اوړي .

## دخپل مکاتب د وینځې سره وطی کول

وَإِذَا وَطِئَ الْمَوْلَى جَارِيَةَ مُكَاتَبِهِ کله چې مولی د خپل مکاتب وینځه وطی کړي فَجَاءَتْ بِوَلَدٍ اودهغې بچې پیدا شي فَادَّعَاهُ اومولی دهغه دعوی اوکړي .[چه دا بچې زما نه پیدا شوې دې] فَإِنْ صَدَّقَهُ الْمُكَاتَبُ که مکاتب دده تصدیق اوکړلو ثَبَتَ نَسَبُ الْوَلَدِ مِنْهُ نودبچي نسب د مولی نه ثابتیږي .وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللّٰهُ تَعَالَى اودامام ابویوسف رح نه روایت دي أَنَّهُ لَا يُعْتَبَرُ تَصْدِيقُهُ چې د مکاتب تصدیق ته څه اعتبارنشته. که مکاتب تصدیق اوکړي اوکه اونکړي .په دواړو صورتونوکي دبچي نسب دمولی نه ثابتیږي ] اِعْتِبَارًا بِالْأَبِ امام ابویوسف رح د زیربحث مسئلې قیاس په هغه مسئله کوی .چه پلار[دخپل ځوی د وینځې سره وطی کړې وی .اودهغې نه بچې پیدا شي يَدَّعِي وَلَدَ جَارِيَةِ ابْنِهِ اوپلاردعوی اوکړي .چه دا بچې زما دې.نود پلار نه ئې نسب



ثابتیږي .که دده زوې دپلار تصدیق کوی اوکه نه کوی ] وَوَجْهُ الظَّاهِرِ اوخووجه د ظاهر روایت [چه د مکاتب د تصدیق په صورت کي نسب ثابتیږي ] وَهُوَ الْفَرْقُ اودا وجه په حقیقت کي د دواړو مسئلوپه مینځ کي توپیر دې أَنَّ الْمَوْلَى لَا يَمْلِكُ التَّصَرُّفَ فِي أَكْسَابِ مُكَاتَبِهِ .هغه دا چې مولی د خپل مکاتب په ګټه کي د تصرف حقدار نه دې.[دې په کي تصرف نشي کولې] حَتَّى لَا يَتَمَلَّكَهُ هم دا وجه ده چې مولی دخپل مکاتب ګټه نشي خانته کولې وَالْأَبُ يَمْلِكُ تَمَلُّكَهُ اوپلار د خوی د مملوك ځیزمالك جوړیدې شي فَلَا مُعْتَبَرَ بِتَصْدِيقِ الِابْنِ نو[ځکه] د ځوی تصدیق ته څه اعتبار نشته.[که هغه د پلارتصدیق کوی اوکه نه کوی .دبچي نسب د مولی د پلارنه ثابتیږي .دغه ډول دلته هم که مکاتب تصدیق کوی اوکه نه کوی .نسب ئې د مولی نه ثابتیږي ]

حل اللغة: ① اكساب: کسب کول ② تصديق: یوکس ته د رښتیا نسبت کول]
تشریح:- دڅباره او اضافي قیوداتو څخه مطلب واضح دي.

وَعَلَيْهِ عُقْرُهَا امام قدوری رح فرمائي .په مولی باندې د وینځې عقردې

تشریح:- په ظاهره خوکه ګورې نومولی د پردۍ وینځې یعنی دمکاتب وینځې سره وطی کړې ده.ددې تقاضا خودا وه.چه په مولی باندې حدزنا جاری شوې وو.البته مولی په دې غلط فهمۍ کي وو.چه چونکه دمکاتب ګټه دده لپاره ده.نوزما لپاره به د دې وینځې سره وطی کول هم جائز وی .حالانکه مسئله داسې نه ده.نوددې غلط فهمۍ په وجه یوه شبه پیدا شوه.اودهغه شبه د امله حدزنا ساقط شو.البته مولی چونکه د مکاتب وینځه وطی کړې ده.نوددې وطی تاوان به ورته ورکوی .چه عقرورته وائي .

لِأَنَّهُ لَا يَتَقَدَّمُهُ الْمِلْكُ ځکه چې د وطی نه وړاندې دمولی په وینځه باندې ملکیت نه وو لِأَنَّ مَا لَهُ مِنَ الْحَقِّ ځکه چې د مولی [په مکاتب باندې ] کوم حق دې كَافٍ لِصِحَّةِ الِاسْتِيلَادِ هغه صرف وینځې لره دام ولدجوړلو لپاره کافي دې لِمَا ذَكَرْنَاهُ .لکه چې موږ به ئې ذکرکړو

تشریح:- ددې خبرې دلیل چې په مولی باندې عقر واجبیږي .دا دې.چه په کوم وخت کي مولی دخپل مکاتب وینځې سره وطی کوله.نوپه هغه وخت کي دغه وینځه دمولی په ملکیت کي نه وه.البته چونکه دا وینځه هم دده دمکاتب وینځه وه.نوپه دې وینځه کي دمولی څه نا څه حق وو.اودغه حق ددې لپاره کافي وو.چه دا وینځه ام ولداوګرځي .

قَالَ وَقِيمَةُ وَلَدِهَا اوپه مولی باندې د بچي قیمت لازم دې [چه مولی به خپل مکاتب ته دبچي قیمت ورکوی ] لِأَنَّهُ فِي مَعْنَى الْمَغْرُورِ ځکه چې دا ماشوم د ولدمغرور په حکم کي دې حَيْثُ إِنَّهُ اعْتَمَدَ دَلِيلًا هغه داسې چې مولی په یودلیل باندې اعتماد وَهُوَ أَنَّهُ كَسْبُ كَسْبِهِ اوکړلو.هغه دلیل دا چې د مکاتب ګټه د مولی ګټه ده فَلَمْ يَرْضَ بِرِقِّهِ نومولی د بچي په غلامۍ باندې راضي نشو فَيَكُونُ حُرًّا بِالْقِيمَةِ نوماشوم به د قیمت په بدله کي آزاد شي ..[چه مولی به خپل مکاتب ته د بچي قیمت ورکړي ] ثَابِتَ النَّسَبِ مِنْهُ اودماشوم نسب به د مولی نه ثابت شي وَلَا تَصِيرُ الْجَارِيَةُ أُمَّ وَلَدٍ لَهُ او وینځه د مولی ام ولدنه ګرځي لِأَنَّهُ لَا مِلْكَ لَهُ فِيهَا حَقِيقَةً ځکه چې په حقیقت کي دمولی په وینځه باندې ملکیت نشته كَمَا فِي وَلَدِ الْمَغْرُورِ لکه څنګه چې په ولدمغرورکي ملکیت نه وی وَإِنْ كَذَّبَهُ الْمُكَاتَبُ فِي النَّسَبِ اوکه مکاتب په نسب کي دمولی تکذیب اوکړلو .[چه دا ماشوم ستا ځونې نه دې] لَمْ يَثْبُتْ نو[دمکاتب دانکارپه صورت کي ] دماشوم نسب دمولی نه نه ثابتیږي لِمَا بَيَّنَّا دهغه دلیل د امله کوم چې موږ بیان کړلو أَنَّهُ لَا بُدَّ مِنْ تَصْدِيقِهِ چې دمکاتب تصدیق ضروری دې

تشریح:- اوپه مولی باندې لازم دی .چه د ماشوم کوم قیمت کیږي .هغه خپل مکاتب ته ورکړي .ځکه دغه بچې د ولدمغرور په حکم کي شو.یعنی مولی په دې دهوکه شو.چه د مکاتب د وینځې سره به زما لپاره وطی کول جائزوی .ځکه چې دده ګټه هم زما لپاره ده.نوکوم ماشوم چې پیدا شو.هغه د ولدمغرور په حکم

کي دي.اوپه ولدمغرور کي دا مسئله ده.چه نسب ئې د واطی نه ثابتیږی .خوچه د چا وینځه وی .هغه ته به ددغه ولد قیمت ورکوی .

**فَلَوْ مَلَكَهُ يَوْمًا** که دې (مولی ) د هغه (ماشوم) مالك شی یوه ورځ **ثَبَتَ نَسَبُهُ مِنْهُ** نو ثابت شو نسب د هغه (ماشوم) د ده (مولی ) نه **لِقِيَامِ الْمُوجِبِ** د امله د قیام د موجب نه (چه سبب د آزادئ دې چې ملکیت دې) **وَزَوَالِ حَقِّ الْمُكَاتَبِ** او د امله د زائله کیدو حق د مکاتب نه (کوم چې د نسب د ثبوت نه مانع او رکاوټ وو) **إِذْ هُوَ الْمَانِعُ** ځکه چې هم دې مانع وو (یعنی د مکاتب ملکیت موجود وو) **وَاللَّهُ تَعَالَى أَعْلَمُ بِالصَّوَابِ**

**تشریح:-** دمکاتب د تکذیب په صورت کي دمولی نه نسب نه ثابتیږی .خوکه د مکاتب د تکذیب نه روسته یوه ورځ هم دغه ماشوم د مولی په ملکیت کي راغلو.نود مولی نه د دغه ماشوم نسب ثابتیږی .دکوم نسب چې د مکاتب د انکارپه وجه نه وو ثابت شوې.ځکه چې د نسب د ثبوت سبب موجود شو.چه ملکیت دې.اووړاندې خونسب ځکه نه ثابتیدلو.چه د نسب د ثبوت مانع موجود وو.یعنی د مکاتب ملکیت.خوچه کله دغه مانع ختم شو.نواوس به نسب ثابتیږی .

---

[1] القول الراجح هو قول الطرفين رحمهما الله كذا في خلاصة الفتاوى (١١٧/٢) والدرالمختار(٦٥٧/٢) والهندية (٥٣٠/١١) نقلاً عن القول الراجح (٣٦٩/١١)-

[چور (حمله)
[چم (چل)
(ح)
[حکمي مرداري (حکمي نجاست)
(خ)
[خلگ (خلق)
[خلگو (خلقو)
[خپاره (خواره)
(د)
[دغه ډول (دغه شان)
[د عمل وړ (د عمل وړ)
[درلودی (لرلو)
[دریيم (دریم)
(ر)
[راسته (ښي)
[راتگ (راتلل)
(ز)
[زموږ (موږ)
[زیږیدل (پیدائش)
(ږ)
[ږموږ (موږ)
[ږیږیدل (پیدائش)
[ژباړي (ترجمې)
[ژباړه (ترجمه)
[ژي (مشکیزه)
[ژوول (جوئیل)
[ژي (مشکیزه)
(س)
[سهار (صبا)
[ساتنه (حفاظت)
[سربیره (دپاسه)
[سراج (ډیوه)
[سلواغه (بوقه)
[ساعتونه (لمحات)
[ساعت (لمحه)
[سراج (ډیوه)
[سپرلۍ (سورلۍ)

[پیوسته (مسلسل)
[پیشي (پیشو)
[پیشلمی (پیشمنې)
[پور (قرض)
[پوست (پوستکي)
[پور (قرضي)
[پوولي (خرولي)
[پښو (خپو)
[پښي (خپي)
[پوول (خرول)
[پلنده (تان)
[پربښودي (پریخودي)
(ت)
[توانگر (مالدار)
[توپیر (فرق)
[توپیر (توپیر (تبدیلی))
[تیخرگ (ترخ)
[توان (طاقت)
[توپیر (تبدیلی)
(ټ)
[ټوك (جلد)
(ټ)
[ټوك (جلد)
(ج)
[جلا (جدا)
[جلا جلا (جدا جدا)
(چ)
[چوپوالي (خاموشی)
[چپه (گس)
[چوپ (چپ)
[چم (چل)
[چنگوښه (چیندخ)
[چوغکه (مرغۍ)
[چتلي (گندگی)
[چمپلان (څپلۍ)
[چاغه (تیاره)
[چمپلان (څپلۍ)

[امله (وجې)
[اړخ (طرف)
[انډیوال (ملگری)
[اوپریمنځل (اووینځل)
[اړتیا (ضرورت)
[اړه (باره)
[الغه (حلقه)
[اخته (مبتلا)
[انډیوالان (ملگری)
[ایله کړي (پرانستي)
[انا (نیا)
[اکا (تره)
[اونه کی (اونکړی)
(ب)
[ابرخو (حصو)
[ابرخه (حصه)
[ابیرغ (جنډا)
[ابلا ناغه (پرله پسې)
[ابايد ده (پکار ده)
[ابوخت (مشغول)
[ابولي (متیازي)
[ابازي (لوبې)
[ابي غوری (کوتاهی)
[ابوق (قب)
[ابته (مته)
[ابندی خانه (جیلخانه)
(پ)
[پاته (باقی)
[پیل (شروع)
[پوښتنه (تپوس)
[په عامه توگه (عام طور)
[پربښولو (پریخودلو)
[پاته (باقی)
[پربښول (پریخودل)
[پربښولو (پریخودلو)
[پزه (پوزه)
[پرېږه)
[پربښولو (پربښولو)



[مڅکه (ځمکه)
(ن)
[نښانه (نښه)
[نجوني (نجوني (جینکۍ))
[نفر (کسان)
[نښلیدل (لگیدل)
[ناړي (لیاړي)
[نښتيزل (نچوړول)
[نژدې (نیژدې)
[نومول (نامدار)
(و)
[ویش (تقسیم)
[واړه (ټول)
[وزه (چیلۍ)
[ولاړ شه (لاړ شه)
[ورون (پتون)
[ورونان (پتونان)
[ور کولای شی (کولې شی)
[ور کولای (کولې)
[وپلوری (خرڅه کړی)
[ویاله (نهر)
(ه)
[هسکي (پچې)
[هنداره (شیشه)

[کولای شی (کولې شی)
[کوټ (خیرې)
[کوڅیو (کونسۍ)
[کښتۍ (کشتۍ)
[کونجته (کونځله)
[کولاې (کولې)
[کرار کرار (مزه مزه)
(گ)
[گډ (شامل)
[گونډۍ (کونډۍ)
[گوله (نمرۍ)
[گښتونه (چکرونه)
[گټور (گټور (فائده مند))
[گټور (فائده مند)
[گرځ (گرد)
(ل)
[لنډیز (خلاصه)
[لمرڼمر)
[لینگۍ (پنډۍ)
[لنگوټي (پټکی)
[لږترلږ (کم ازکم)
[لویدیځ (مغرب)
[لاستي (لاسکي)
[لوټه (کوزه)
[لاچاری (مجبوری)
(م)
[مهال (دوران)
[ماپښین (ماسپخین)
[میړه (خاوند)
[مسبوق (خلیفه)
[مرداری (پلیتی)
[منځنی (درمیانه)
[مسافه (مسافت)
[مولښتی (پیوست)
[مچی کول (ښکلول)
[منډې (میاندې)
[مړینه (مرکیدل)
[منگوړ (کتمل)

[سرپټ (سرپوښ)
[سرکښه (سرکشه)
[ساعت (لمحه)
[سپنسي (مزې)
(ش)
[شی (ځین)
[شیان (شیان (خگیزونه))
[شرموښ (شرمخ)
[شاگر (شاگرد)
[شتمن (مالدارن)
[شتمن (مالدارن)
(ص)
[صحرائی (باندیچی)
[صندخ (صندوق)
(ط)
[طرفه (اړخه)
(ع)
[عکس (تصویر)
[عجلی (تیزی)
(ف)
[فرش (قالین)
(ق)
[فرش (قالین)
[قرضونه (پوررونه)
[قلف (تاله)
(ک)
[کوښښ (کوشش)
[کاوه (کولو)
[کیداې (کیدې)
[کومك (مدد)
[کښته (ښکته)
[کښینستل (کیناستل)
[کالی (جامه)
[کوڅیو (کونسۍ)
[کشور (شمشتۍ)
[کوڅیو (کوڅو)
[کښت (پټې)
[کشف (شمشتۍ)